# پښتانه

## د تاریخ په رڼا کښې

سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل

یونیورسټي بک ایجنسي
پېښور

# پښتانه

## د تاریخ په رڼا کښې

سید بهادر شاه ظفر کاکاخېل

یونیورسټي بک ایجنسي پېښور

# تړون

د هغه پښتنو په نوم

چه

د پښتنو د تاریخ سره مینه لري

او

په دې لړ کښې هر زیار او خیرن

ته په درنه سترګه ګوري

ظفر

93

# د عنوانانو فهرست

کتابت :- اعجاز الرحمن خلوصی د اکوړې

ماسټر پرنټرز محله جنګی پېښور

96

# پیل

## په نامه د لوئ خدائ

په وسیعه معنیٰ کښې تاریخ دانسان دژوند د مختلفو اړخونو او دانسانی کارنامو یوه اوږده قیصه ده. د دې آغاز د هغه وخت نه شوې دې. دکله نه چه انسان دحیوانیت منزل رالنډ کړو. او دانسانیت په شپول کښې ور دننه شو. دانسان دژوند او کارنامو دا اوږده قیصه که په یو لور خوند ناکه ده. نو په بل لور فائده منده هم ده. په دې کښې د قامونو دانقلاباتو دعروج او زوال عجیبه عجیبه واقعات بیانیږی. او ددې په لوستلو د قامونو دخپلو ملکونو او د خپلو مشرانو دځلانده کارنامو سره مینه زیاتیږی. تاریخ د هغه خلقو دکامیابو او ناکامیابو یوه هنداره ده. چا چه په مختلفو وختونو کښې د اختیار او اقتدار دحصول د پاره زیار ونه ایستلی دی.

د قامونو په عروج و زوال کښې د قامی تاریخ لویه برخه ده. د خپلو قامی روایاتو او د خپلو اسلافو دځلانده کارنامو نه ځان خبرول، دخپلو مشرانو دجرأت، شجاعت، تدبر، او جدوجهد نه واقفیت حاصلول د قام د افرادو یو ضروری او خوشگوار فرض گڼلے شی. ځکه چه په دنیا کښې هر یو قام دخپلو مشرانو دځلانده کارنامو نه عبرت اخلی او د دې په وجه مخ تګ ته لیواله کیږی.

د دنیا دځینې نومیالو قامونو په شان پښتون هم یو پخوانی قام او دیو ځلانده اوږد تاریخ خاوند دے. ولې دبده مرغه ددې قام ډیر پخوانی تاریخ په تیارهٔ کښې پټ دے. او ددې وجه څرګنده ده. دانسان په اجتماعی ژوند کښې دقبیلوی نظام حیات یو

مؤثره برخه ده. د پښتنو معاشرت په قبیلوی نظام مبنی دے. د خپلې علاقې طبعی ماحول او جغرافیائی محل وقوع په دوی کښې ځینې خاص صفات پیدا کړی دی. د قبیلوی نظام په وجه په دوی کښې د هرې قبیلې د افرادو وفاداری او مینه د خپلې قبیلې د مشرسره وابسته وی. تر دے چه دوی په خپل مینځ کښې هم د بلې قبیلې سیادت او اقتدار ته په وس غاړه نه ږدی. دا هم یو تاریخی حقیقت دے چه د تاریخ په مختلفو دورونو کښې دهند په لور د حمله آور قام او له مقابله هم پښتنو کړی ده. د دغه وجه وه چه د خپلې علاقې د جغرافیائی محل وقوع له کبله به دوی تل د خپلې آزادئ په حفاظت کښې کمر کس ولاړ وو. او په اصلی معنو کښې د هیڅ استبداد ئے نه دے منلے. په دے بنا نه خو دوی د نورو قامونو نزدیکت ته مینه کړی ده. او نه نورو قامونو دوی ته ځان نزدے کړے دے. اوس که چرے دا رښتیا وی چه انسان د ماحول غلام دے. نو دا ویل به هم بے ځایه نه وی چه د پښتنو تاریخ د دوی د علاقې د طبعی ماحول، جغرافیائی محل وقوع او د دوی د قبیلوی نظام حیات پیداوار دے یا داسے به او وایو چه دوی د ژوند د نورو لارو چارو په نسبت د خپلې آزادئ حفاظت ته ترجیح ورکړے وو. او ځکه د دوی د ډیرے پخوانئ زمانې کارنامے موږ ته په تحریری شکل کښې په لاس نه راځی. په دے لړ کښې به دا ویل بے ځایه نه وی چه د ډیرو دوه سوه (۲۰۰) ق.م نه پس او د بابر (۱۵۰۴ء) نه وړاندے د دوو زروکالو دا اوږده زمانه د پښتنو د تاریخی معلوماتو څخه په اصلی معنو کښې شنړه ده. او په دے اوږده زمانه کښې څه داسے تاریخی معلومات په لاس نه راځی. چه د هغې نه د پښتنو د تاریخ مختلف اړخونه څرګند شی.

د شپاړسمې صدئ د نیمے نه پس هرکله چه مغلو په هند کښې د پښتنو سیاسی اقتدار په قطعی ډول ترلاسه کړو. نو د دے نه پس د مغل دربار په ایما و هدایت د پښتنو په باب کښې هم تاریخونه اولیکلے شول. ولے دا تاریخونه چونکه د یوے خاصے نظرئے زیر اثر لیکلی شوی دی. نو د دے نه د تصویر دواړه مخونه په اصلی شکل کښې نه څرګند یږی.

د نولسمې صدئ په آغاز کښې د یورپ ځینې مستشرقینو د مشرقی قامونو او د هغوی د ژبو په لور توجه اوکړه. په دے لړ کښې ځینې عالمانو د پښتنو تاریخونه اولیکل او د پښتو ژبے څیړنه او پلټنه ئے شروع کړه. د دے عالمانو دا څیړنے او علمی کارنامے د ډیرے ستائینے وړ دی. په حقیقت کښې دا هم د دے مستشرقینو د څیړنو برکت دے.

چه د پښتنو د تاریخ په لړکښې د تحقیق و تجسس په رڼا کښې یوه نوې لار پیدا شوې ده۔

زما په خیال کښې د پښتو ن قام په تاریخ لیکلو کښې څنې خاص مشکلات دی۔ په دے کښې یو مشکل خو دا دے چه ددے اولس د قدیمی دور تاریخ محض په قیاس او جزوی معلوماتو مبنی دے۔ دویم مشکل د پښتنو د اصل نسل مسئله ده۔ اگر چه د پښتنو د نسلی تحقیق مسئله بیخ یو علمی او تاریخی موضوع دے۔ ولے د بده مرغه ددے په مقله چه هرڅومره څه لیکلی شوی دی د هغ نه خبره نوره هم پیچیده شوې ده۔ د پښتنو په تاریخ کښې دریم مشکل زما په خیال کښې دا دے چه ددے اولس په حقله خپل دی او که پردی ټولو د افغان او پټهان الفاظ استعمال کړی دی۔ یعنی په بهرنۍ دنیا کښې دا خلق په افغان او پټهان متعارف دی۔ حال دا دے چه پښتانه خپل ځان ته افغان وائی نه پټهان ، بلکه پښتون وائی۔ غرض دغه شان او ددے قسم څنې نور مشکلات دی چه د پښتنو د تاریخ په لیکلو کښې د یو لیکوال په ذهن کښې دوجالی پیدا کوی۔ او څکه د پښتنو د یو بشپړ تاریخ لیکلو دپاره د ډیر لوئ علم، ژورے مطالع، کامل فراغت او د وسیعو وسائیلو ضرورت دے۔ او تر څو مره چه زما تعلق دے نه خو زما عملی پنکه وا فره ده۔ او نه دا دعوی لرم چه زه د پښتنو یو لوئ ادیب، فاضل، محقق او مؤرخ یم۔ بلکه حقیقت دا دے چه د پښتنو د تاریخ یو نوم ورکے طالب علم یم۔ او د یو نوم ورکی طالب علم په حیثیت د پنځه دیرشو کالو راسے د پښتنو د تاریخ په څیړنه کښې لګیا یم۔ او د الله تعالیٰ ډیر ډیر شکر گزار یم چه هغهٔ محض په خپل فضل وکرم زهٔ ددے قابل وګرځولم چه نن د خپلې نیمګړی مطالع او نیمګړو وسائیلو په دائره کښې حاصل کړی معلومات د پښتنو د تاریخ دمینانو په خدمت کښې پیش کوم۔

د پښتنو د تاریخ په لیکلو کښې چه کومو مشکلاتو ته ما پورته اشاره کړے ده۔ زهٔ هیڅرے دا دعوی نهٔ لرم چه ددے په حقله چه ما کوم معلومات پیش کړی دی هغه قطعی او آخری دی۔ ډیره ممکنه ده چه زما د څنے اخذ کړده نتائجو او نظریاتو سره سباغلی لوستونکی جائز اختلاف ولری۔ دا هم کیدے شی چه د بعض واقعاتو په تجزیے او د نتائجو په اخذ کولو کښې زما نه غلطی شوی وی۔ دا هم امکان لری چه د پښتنو د ابتدائی تاریخ په ذکر کښې څینې داسے واقعات په تفصیل سره ذکر کول چه د هغ نه د پښتنو په حقله براهِ راست معلومات په لاس نهٔ راځی۔ سباغلی لوستونکی غیر ضروری اوګڼی۔ ولے د

دے قسم واقعات چونکه دپښتنو د علاقے سره په څه نه څه شکل کښے ضرور تعلق لری۔ او پښتانۀ په دے خپله زمکه د قدیمے زمانے نه استوګن دی۔ نو یقیناً د دے واقعاتو سره به د پښتنو څه نه څه تعلق پاتے شوے وی۔

ترڅومره چه په پښتو ژبه کښے دپښتنو د تاریخ د کتابونو تعلق دے۔ زما د معلوماتو مطابق تر اوسه پورے صرف دوه کتابونه موجود دی چه یو د یو انګریز لیکوال مسټر میلسن د انګریزی تاریخ افغانستان پښتو ترجمه ده۔ چه ښاغلی خان بهادر منشی احمد جان مرحوم کړی ده۔ او بل د ښاغلی قاضی عطاء الله خان مرحوم "دپښتنو تاریخ" دے. ولے دا دواړه تاریخونه بیخی نامکمل دی۔ د مرحوم قاضی صیب تاریخ اګرچه هسے په سرخو په درے جلدونو کښے خور شوے دے۔ ولے په اصل کښے د پښتنو د تاریخ په یوه ډیره لنډه دوره مشتمل دے۔ د دے په نسبت د منشی احمد جان تاریخ زیات مکمل دے۔ دا یو تاریخی حقیقت دے۔ چه پښتانۀ په هند کښے کم و زیات درے سوه کاله د اقتدار اعلیٰ خاوندان وو۔ ولے دا تاریخونه په هند کښے د پښتنو د سیاسی عروج و زوال د ذکر نه خالی دی۔ په دے تاریخونو کښے بله غټه نیمګړتیا دا ده چه دا د پښتنو د قدیم تاریخی دور چه قریباً په یونیم زر کاله خور دے۔ د ذکر نه هم بیخی خالی دی۔ او په دے لحاظ زما دا تاریخ یقیناً مکمل او بشپړ دے۔

د دے کتاب اراده ما د ۱۹۳۸ء نه کړی ده۔ او د یو څو کالو نیمګړی کوششونو نه پس مے کتاب مرتب کړے وو۔ ولے په هغه ورځو کښے د یورپ دوئم جنګ عظیم هم شروع شو۔ او د کتاب د اشاعت خبره په ځائے پاتے شو۔ د جنګ د ختمیدونه پس د پاکستان تحریک په صوبه سرحد کښے هم په ډیر زور و شور سره شروع شو۔ او حتیٰ چه په ۱۴ اګست ۱۹۴۷ء ملک آزاد او پاکستان قائم شو۔ د پاکستان د قیام سره سم څه لږے ورځے پس د قاضی صاحب عطاء الله خان مرحوم د "پښتنو تاریخ" هم شائع شو۔ او ترڅو چه ما د ښاغلی قاضی صیب تاریخ نۀ وو لیدلے۔ ترهغه زما سره دا سودا وه چه د قاضی صیب غوندے د یو لوړ شخصیت د تاریخ په مقابله کښے به زما د تاریخ څه اهمیت وی۔ او څوک به ئے چاپ کوی۔ ولے هر کله چه مے د قاضی صیب تاریخ اولیدو نو ما دا محسوسه کړه چه زما د تاریخ ضرورت باقی دے۔

د قیام پاکستان سره چه د ملک د اختیار واقتدار واګے د خپلو خلقو لاس ته راغلے نو حکومت د ملک د نورا ولس د تعلیمی ترقئ سره د پښتنو تعلیمی ترقئ

ته هم توجه اوکړه. د پښتنو په ټوله علاقه کښې دوړو لويو سکولونو جال خور شو. کالجونه پرانستې شول. پښتو ژبې ته په پرائمري مدرسو کښې دلازمي ژبې درجه ورکړې شوه. او په ثانوي سکولونو او کالجونو کښې ئې د اختياري ژبې حيثيت اوموندهٔ. د پښتنو د تعليمي پسماندګۍ د لرې کولو په غرض د پيښور پوهنتون قيام د حکومت پاکستان يو داسې کارنامه ده چه ټول پښتانهٔ ئې د زړهٔ د اخلاصه منّنه کوي. حکومت د لورې نه د پښتو ژبې د دې روزنې او پالنې په نتيجه کښې پښتنو ليکوالو هم پښتو ته مخه کړه. او د پاکستان د قيام نه پس د پښتو ژبې ادبي لمن دومره فراخه شوه چه په ځائې پرې وياړ کيدے شي.

په اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء کښې د ملک په حکومت کښې يو پر امن انقلاب اوشو. او د ښاغلي محمد ايوب خان په قيادت کښې د حکومت واګې د داسې خلقو لاس ته راغلې چه هغوی په ډيره کلکه اراده د ملک خدمت ته ليواله وو. انقلابي مګر په اصلي معنو کښې قومي حکومت د ښاغلي صدر محمد ايوب خان په رهنمائۍ کښې په ډيره لږه موده کښې د ملک د ترقۍ او بهبود دې په لړ کښې څنګه داسې اصلاحات او اقدامات اوکړل چه د هغې هومره ستائينه اوشي نو بې ځايه به نهٔ وي. د زرعي اصلاحاتو نفاذ، د مهاجرينو آبادکاري، د بهارت سره د نهري اوبو د تنازع تصفيه، د تعليمي کميشن قيام، يو آزاده او باوقاره خارجه پاليسي اختيارول، ملک ته سياسي استحکام وربښل، د ملک د هر اړخيزې ترقۍ په لړ کښې کثير المقاصد منصوبې سازول او په هغې په تيزۍ او تندۍ عمل کول. او داسې نورې ډيرې خبرې د صدر محمد ايوب خان د انقلابي دور حکومت زرينې کارنامې دي. د دې حکومت يوه بله د ستائينې وړ کارنامه ملک ته يو قابل عمل آئين ورکول او د دې په رڼا کښې په اول ځل په ملک ګيره پيمانه آزادانه انتخابات کول او د ملک د حالاتو او تقاضو عين مطابق په ملک کښې د جمهوري حکومت قائميدل دي.

غرض د آزادۍ نه پس که په يو لور حکومت د پښتنو د تعليمي او اقتصادي ترقۍ په لور توجه اوکړه. نو په بل لور د پښتو ادب پوهانو هم د پښتو ادب خدمت ته ملا اوتړله. او د پښتو ادب په هره څانګه کښې ډول ډول او راز راز کتابونه او ليکلې شول. او ليکلې شي. او که د کتابونو ډير والے د يو ژبې د ترقۍ او پرمختګ معيار کيدے شي. نو دا ويل به بې ځايه نهٔ وي چه پښتو ژبه هم د نړيوالو نورو

علاقائي ژبو سره سيالي كولے شي ـ ولے ترڅو مره چه د پښتنو د تاريخ دڅانګے تعلق وے نو دا څانګه لا تر اوسه پورے د پښتنو د سترو ليكوالو او نوميالو پوهانو توجه ته اړ ده ـ

لكه چه مِ وړاندے عرض كړے دے د پښتنو د يو بشپړ تاريخ ليكل زما غوندے يو انسان دپاره چه نهٔ صرف په پوهه او علم نيمګړے دى ـ بلكه په ټولو وسيلو هم كه ناممكن نهٔ دى ـ نو ګران خو ضرور دى ـ ولے سره د خپلو ټولو نيمګړتياګانو د احساس او منلے زهٔ دا تاريخ په دے هلهٔ د پښتنو د تاريخ د مينانو په خدمت كښے پيش كوم ـ چه ګوندے د پښتنو ستر ليكوال او نباغلي پوهان زما د دے نيمګړي كوشش په ليدو د پښتنو د تاريخ په لور متوجه شي ـ او په خپلو نيكو مشورو او اصلاحي تنقيدنو زما د دے نيمګړ تياګانو په لرے كولو كښے زما مرسته اوكړى ـ او په دے ډول د پښتنو يو داسے تاريخ مرتب شي چه هغه تر ډيره حده د دے نوميالي قام د شان وړ دى ـ

دا كتاب لكه چه مِ وړاندے عرض كړے دے ـ په ابتدائي شكل كښے دپاكستان دقيام نه آګاهو مرتب شوے وو ـ ولے د پاكستان د قيام نه پس د څينے دوستانو په اسرار او مشوره ما د خپل پښتو لغت " ظفراللغات " ترتيب ته مخه كړه ـ د دے لغت په تاليف كښے هم زهٔ د ډيرے مودے نه لګيا ووم ـ چنانچه په ١٩٥٩ء كښے ما د لغت مسوده كاتب صاحب ته حواله كړه ـ او كتاب د ١٩٦٠ء په آغاز كښے شائع سو ـ او د دے نه پس مِ دے تاريخ ته بيا توجه اوكړه ـ د آزادۍ نه پس حالات ډير بدل شوى وو ـ او د نوى حالاتو دا تقاضا وه چه زهٔ هم د نوى سر نه په دے كتاب غور اوكړم ـ چنانچه ټوله مسوده مِ بيا بدله كړه ـ او نن د الله پاك په مهربانۍ د نباغلو لوستونكو په خدمت كښے كتاب حاضر دے ـ

د پښتو د يو كتاب او هغه هم يو علمي كتاب په چاپولو كښے چه كوم مشكلات پيښيږى ، د هغے نه د پښتو ژبے ليكوال ناخبره نهٔ دى ـ اول خو زمونږ په علاقه كښے پښتانهٔ پبلشران په اوړ و كښے مالګه هم نهٔ دى ـ او كه يو كس نيم دى نو هغوى هم د پښتو كتاب چاپ كولو ته په دے وجه غاړه نهٔ ږدى چه د پښتو كتاب چاپ او د خپلے پنګے نه لاس وېڅل كه يو برابر او نهٔ شي ګڼلے بيا هم د يو نامعلومے مودے دپاره خود خپلے پنګے نه ذرهٔ صبر ول ضرور دى ـ ولے په دے لړ كښے نباغلے مياں فضل منان صاحب (د يونيورسټي بُك ايجنسۍ خيبر بازار پيښور) مالك نهٔ يواځے زما بلكه د پښتنو د تاريخ سره د ټولو مينه لرونكو پښتنو د شكريے او ستائينے وړ دے ـ مياں

صاحب په روڼ تندی ددے کتاب چاپ کولو ته ملا اوتړله - او دا د دویٔ دهمت او قربانئ برکت دے - ورنه ډیره ممکنه وه چه دا کتاب یو څو کاله نو هم زما په بسته کښے خوندی پاتے وے -

ښاغلے اعجاز الرحمٰن اعجازؔ (خوش نویس) هم زما د شکریے مستحق دے. دے ښاغلی په ډیر اخلاص او محبت د کتاب کارسرته اورسولو او په څومره کیدے شوه زما ګراوُ او تکلیف ئے کم کړو -

هسے خو ددے کتاب په تالیف کښے ما د هر چا نه او هر خوا نه استفا ده کړی ده - ولے دا لاندے کتابونه ئے په خصوصیت سره په مطالعه کښے پاتے شوی دی - او ددے نه مِ لږه یا ډیره استفاده کړے ده - او د زړهٔ د اخلاصه ددے مننه کوم -

**بی - ایس - ظفرؔ کاکا خیلؔ**

۳ ر مئ سنه ۱۹۶۵ء

مطابق

۲۹ ر ذی الحجه سنه ۱۳۸۴ھ

زیارت کاکا صاحب

# كتابيات

**ا - انګريزي :-** (۱) پاکستان پنځه زره کاله آګاهو - (۲) سم انیشنټ سټيز آف انډيا. (بائی سټوارټ پیګسټ) -(۳) انیشنټ انډيا (بائی وی-ډی- مهاجن -(۴) هسټری آف انډيا -ویدک ایج - جلد سوم (بائی ټالبواټز وهیلر) -(۵) ارلی هسټری آف انډيا (بائی ولنسنټ، اے - سمتهـ - (۶) این ایډ وانسډ هسټری آف انډيا - پارټ I انیشنټ انډيا - (بائی آر- سی - موجمدار) -(۷) کیمبرج هسټری آف انډيا -(۸) هسټری آف انډيا رانډ رمسلم رول) بائی جے - ټالبواټز وهیلر جلد چهارم حصه اول او دوم — (۹) سلطنت فاغنه (بائی ایلیټ اینډ ډوسن) - (۱۰) میماټرز آف بابر (۱۱) تذکرة الواقعات (آر پرائیویټ میماټرز آف مغل ایمپرز همایون -(۱۲) میماټرز آف بابر - (۱۳) افغانستان -(۱۴) دی پټهانز (بائی مسټر کیرو) -(۱۵) دی پټهانز (بائی عبدالغنی خان - (۱۶) افغان اِن انډيا (بائی ډاکټر اے رحیم کراچی یونیورسټی) -(۱۷) دی ایولیوشن آف این-ډبلیو- ایف- پی (بائی رائے بهادر دیوان چند اوبرائے) -(۱۸) دی ګیټ وے آف انډيا - (۱۹) بائیوګرافیکل انسائیکلوپیډيا آف پاکستان -(۲۰) اے هسټری آف دی فریډم موومنټ جلد سوم -

**ب - فارسی :-** (۲۱) تاریخ افغانستان جلد اول مصنفه احمد علی کهزاد (۲۲) تاریخ افغانستان جلد دوم مصنفه کهزاد (۲۳) تاریخ افغانستان حصه سوم م - غبار(۲۴) تاریخ سیستان (۲۵) طبقات ناصری (۲۶) کتبات قدیم ایران (۲۷) تاریخ فرشته (۲۸) توزک بابری - (۲۹) خورشید جهان (شیرمحمد خان ګنډه پور) - (۳۰ آریانا - دائرة المعارف جلد دوم - (۳۱) آریانا - دائرة المعارف جلدسوم (۳۲) سالنامه کابل سال سنه ۱۳۱۲ ش (۳۳) سالنامه کابل سال سنه ۱۳۱۳ ش (۳۴) سالنامه کابل سنه ۱۳۱۴ س (۳۵) تذکرة الابرار (اخون درویزه) (۳۶) صراط التوحید (بایزید انصاری) -

**ج - اُردو :-** (۳۷) بائیبل (کتاب مقدس) - (۳۸) تمدن عرب (۳۹) فتوح البلدان جلد دوم (۴۰) صولت افغانی (زرداد خان ناغر- (۴۱) توزک افغانی (۴۴) تاریخ هند (دخان بهادر

ذکاء اللہ مرحوم مختلف جلدونہ) ۔(۴۳) تاریخ ھند۔ (ڈاکٹر سر شفاعت احمد خان مرحوم۔ (۴۴)تاریخ عالم یا انسا ئیکلو پیڈیا جلد اول (ترجمہ مولانا غلام رسول مہر) ۔(۴۶) تاریخ عالم یا انسائیکلو پیڈیا جلد اول (ترجمہ مولانا غلام رسول مہر) ۔(۴۷) مرأۃ العالم جلد اول و دوم ۔(۴۸)تاریخ ملل قدیم مشرق (انجمن ترقی اردو اورنگ آباد دکن) ۔ (۴۹) تاریخ افاغنہ۔ مولوی عبدالمجید خان مرحوم ۔(۵۰) تاریخ آزاد پٹھان جلد اول و دوم (اللہ بخش یوسفی) (۵۱) تاریخ یوسف زئی افغان (اللہ بخش یوسفی) ۔(۵۲) انقلاب افغانستان (عزیز ھندی) (۵۳) چنگیز خان (ھیرلڈ لیم ۔ ترجمہ عزیز احمد) ۔(۵۴) بابرا ھیرالڈ لیم ترجمہ سید ھاشمی فرید آبادی ۔(۵۵) امیر تیمور (ھیرلڈ لیم ۔ ترجمہ گلزار احمد) ۔(۵۶) تاتاریوں کی یلغار۔ (ھیرلڈ لیم ترجمہ عزیز احمد) ۔(۵۷) اورنگ زیب (رشید اختر ندوی) ۔ (۵۸) خوشحال خان خٹک (دوست محمد خان کاملؔ) ۔(۵۹) باچا خان (سید فارغ بخاری) ۔(۶۰) بنی اسرائیل یا ملت افاغنہ (سید عبدالجبار شاہ) ۔ (۶۱) اورنگ زیب عالمگیر پر ایک نظر (مولانا شبلی نعمانی) ۔(۶۲) اصحاب کہف (مولانا آزاد مرحوم) ۔(۶۳) حیات قائد اعظم (رشید اختر ندوی ۔) (۶۴) توزک جہانگیری ۔

**د ۔ پښتو :۔** (۶۵) تاریخ مرصع (اقتباسات) ۔(۶۶) پټه خزانه (۶۷) تاریخ افغانستاں (منشی احمد جان مرحوم) ۔(۶۸) د پښتنو تاریخ ۔ دوه جلدونه (قاضی عطاء اللہ خان مرحوم) (۶۹) پښتانه شعراء اول ټوک (آ قائے حبیبي) ۔ (۷۰) ادبیات پښتو (آ قائے عبدالحئ خان حبیبي) ۔ (۷۱) کلیات خوشحال خان خټک (۷۲) دیوان مرزا خان انصاری ۔ (۷۳) پښتو ادب (عبدالحلیم اثر) ۔ (۷۴) د پښتو نخواهار و بهار (جیمز ډار مسټیټر) ۔ (۷۵) مخزن اخون درویزه)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

# د تاریخ نه وړاندینۍ زمانه

## (عصر قبل التاریخ)

انسان همیشه د دې خبرې کوشش کړې دې، او نګیا دې کوي چه د خپل فکر او د عقل سلیم په کومک د پخوانۍ زمانې د حالاتو او واقعاتو نه د تیرو پردې لرې کړي. او د زړګونو کالو پخوانۍ تیر شوي واقعات را څرګند کړي. او د انسان دڅو ندانه نامعلومه او مجهوله رازونه د تیرو نه رڼا ته راوباسي. ولې دا ستر کار یعنې د تیرې زمانې زاړه او پخوانۍ واقعات او کیفیات د تیرو نه رڼا ته راایستل یوازې د خیال او فکر په کومک سر ته نه رسوي. بلکه کوم څیز چه په دې لړکښې په مثبت شکل کښې رڼا اچولې شي. هغه د پخوانۍ زمانې رسم الخطونه او لیکونه دي. هم دغه لیکونه دي چه د زرګونو کالو پخوانۍ واقعات او حالات ئې د اُمو او پخو خښتو په ټکړو، د غرونو په هوارولو زیږولو او مهینو ډیرینو تختو، په ښاورینو لوښو کودو، هډوکو، داونو په پوستکو، د څناورو په ځرمنو او بیا وروستو په کاغذونو کښې خوندي ساتلي دي. او ترمونږ را رسیدلي دي.

دا هم یو څرګند حقیقت دې چه بنیادم د خپل ژوند په اولنی دورونو کښې په لیکلو لوستلو نه پوهیدلو. او خپل حالات او واقعات ئې نه شو لیکلې. د غه وجه ده چه مونږ د هغه واقعاتو نه کوم په انسان باندې په اولنی دورونو کښې تیر شوي دي. ناخبره یو. ولې د نزدو زمانې د واقعاتو نه چه ئې واخلې تر هغه واقعاتو او حالاتو پورې کوم چه په ډیرې پخوانۍ زمانه کښې په انسان تیر شوي دي. او د انسان فکر د هغې د ظاهرولو او بیانولو نه ناچاره دې. ټول د غه استثنا نه بغیر د تاریخ حصه ګڼلې شي. او د دې بې نشانه اوږدې دورې بیلتون د «رسم الخط او لیک» په خط فاصل سره کیږي. په دې بنا هغه زمانه چه د رسم الخط د ایجاد نه اګاهو په انسان تیره شوې ده. هغه د «عصر قبل التاریخ» په نامه یادیږي. او د رسم

الخط دایجاد نه را په ایسته زمانے ته دتاریخی عصر وئیلے شی۔
د دے خبرے نه هم انکار نهٔ شی کیدے چه د دنیا په مخ په بنیاد موکښې رسم الخط اولیک په یو وخت او یو وار نهٔ دے جاری شوے۔ نوله دے کبله د دنیا تاریخی او قبل التاریخی دوره هم د یوے زمانے نه عبارت نهٔ دے۔ بلکه د دے نه مراد د مادی او فکری قوتونو د ترقئ هغه مرحله ده کومه چه د انسانانو مختلفو ډلو په مختلفو ملکونوکښې په مختلفو زمانوکښې تیره کړی ده۔
دا خبره هم د فکروړ ده چه یوازے د رسم الخط موجودګی د یو قام د تاریخی او قبل التاریخی دورے ترمینځه د بیلتون او جدائئ بریده نهٔ شی ګرځیدلے ترڅو چه د هغ رسم الخط او لیکنو د لوستلو صلاحیت او استعداد پیدا نه کړے شی۔ لکه په مثال کښې دایطالیه او آسیائے صغیر ځینی استوګن چه د رسم الخط او لیکنو باوجود په قبل التاریخی دوره کښې شمیرو و۔ ځکه چه عالمان د دوی د رسم الخط د لوستلونه لاچاره وو۔ ولے هر کله چه د دوی دالیکونه او لوستلے شول نو په تاریخی دوره کښې شمیر شول۔
چونکه په وادئ نیل او وادئ فرات (مصر او عراق) کښې تصویری او صوتی رسم الخط د (۳۵۰۰-۳۰۰۰ ق-م) ترمینځه مینځه شروع شوے دے۔ نوله دے کبله دمشرق د قبل التاریخی او تاریخی دورے د بیلتون کرښه درے، درے نیم زره کاله ق-م ګڼلے شی۔
په قبل التاریخی دوره کښې د انسان د ژوند په حقله چه تراوسه پورے کوم معلومات حاصل شوی دی۔ هغه په لنډو الفاظوکښې دا دی چه په دغه زمانه کښې د انسان ژوند تقریباً تقریبًا په یو ډګر تیریدلو۔ د زمکے او قام اختلاف په کښې څه خاص فرق نهٔ وو پیدا کړے۔ د شرق او غرب، د هند او چین، د مصر او فارس استوګنو په دے دوره کښې د ژوند شپے ورځے په یو ډول تیرے کړی دی۔

# د قبل التاریخی دورے تقسیم

قبل التاریخی دوره عموماً په دوؤ حصو کښې ویشلے شی۔ یعنی په عهد حجری او عهد برنجی کښے په انسانی تاریخ کښے د عهد حجری اندازه پنځه لکه کاله ګڼلے شی۔

ددے په مقابله کښې د مهذب انسان په وجود ایله پنځه زره کاله تیر شوی دی. څه موده وړاندے عموما دا دستور وو چه د تاریخ په لیکلوکښے به عهد حجری ته توجه نۀ کیدله. ولے اوس دا خبره منلے شوی ده چه باوجود ددے چه د عهد حجری انسان اګرچه د تهذیب د منلی شوی مفهوم نه بیخی نا بلده وو. بیا هم هغه د تهذیب اولینو اوخورو ورو تهوتهو ته وده او نشونما ورکړی ده. او که چرے دا سے نۀ وے شوے نو داوسنۍ زمانے انسان به دا سے نۀ وو. لکه چه اوس دے. بنیادم دبهتر ژوندانۀ او ترقۍ په لار په قلاره قلاره تګ کړے دے. ددۀ ددے ترقۍ دمختلفو دورونو اندازه ددۀ دمختلفو آلاتو اواوزارو نه معلومیږی. دا آلات اواوزار به عموما دکاڼي نه جوړ وو. ددے په مدد به بنیادم ښکار کولو. په اوله کښې دا آلات ډیرے ډوله او بدشکله وو. لیکن لکونه کاله پس بنیادم دکاڼي د استعمال په نازک فن کښې مهارت پیدا کړو. او دۀ آلات بیا زیات ډولدار، زیات کارآمد او دمختلفو کارونو داستعمال دپاره زیات موزون شول. دغه زمانه کښې دانسان په دے سامان کښې دا سے څیزونه هم شامل شول. چه دهغ نه به خاص خاص کارونه اخستلے شول. لکه په مثال کښې سورلے، ترخځ، چینځۍ، چاړۀ وغیره.

دعهد حجری په حقله زیات تحقیقات اوچینې په یورپ او افریقه کښې شوی دی. په دے زمکو کښې د تهذیب اوثقافت دا سے درجې موندلے شوی دی. چه په هغ کښې دانسان اوزار او آلات هم مختلف وو. په دے بِنا عهد حجری هم په درے زمانو کښې تقسیمیږی. یعنے (۱) قدیم عهد حجری (۲) مینځوَمانه عهد حجری. (۳) او جدید عهد حجری. د عهد حجری په پنځو لکو کالونو کښے یوه مختصره عرصه یعنی صرف یوڅو زره کاله په آخری دوؤ زمانو (وسطی او جدید) مشتمل دی.

د تهذیت اوله پوړۍ:- قریبًا اَتهٔ زره ق.م مخکښے دجدید عهد حجری دپاره زمکه تیاره شوی وه. دغه زمانه کښې دانسان په ژوند کښې ډیرے بنیادی تبدیلۍ راغلی وے. دغه وخت دانسان آلات او اوزار هم ډیر ښکلی وو. او هم په دغه زمانه کښې انسان دخوراک پیدا کولو فن معلوم کړو. یعنی دکرکیلے کار ئے زده کړو. ددے فن په برکت په هغهٔ کښے خود اعتمادی پیدا شوه. دغه وخت انسان خپل خوراک په خپله پیدا کول زده کړل. او دخوراک په وسیلوۓ قابو

بیا موند - په دې دریافت د انسان په ژوند کښې یو انقلابي تبدیلي راغله. ولې د هغهٔ آلات په دې زمانه کښې هم د کانړي نه جوړ وو.

ددې نه پس د انسان په ژوند کښې بله انقلابي واقعه دا وه چه فلزات (دهاتونه) ئې معلوم کړل. او بنیادم د هغې داستعمال چل زده کړو. د دې آغاز د تانبې نه اوشو. بنیادمو د درنګونو (معدنونو) نه تانبه راښکله. او د هغې نه ئې د ژوند ضروري کالي او اوزار ساز کړل. څه موده پس ئې زیړ هم معلوم کړل. او بیا د تانبې او زیړو په ګډون هم پوهه شو. او د دې مخلوط دهات نه ئې خپل آلات او اوزار ساز کړل. د غه وخت انسان د ترقۍ په ډیرو پورو ختلې وو. د غه زمانې ته برنجي زمانه وائي.

ددې نه روستو چه بنیادم نوره ترقي اوکړه. نو اوسپنه ئې هم اوپیژندله. او د درنګونو نه ئې په راوبښکلو شروع اوکړه. د اوسپنې دریافت د انسان په ژوند کښې په یقیني ډول انقلابي اهمیت اوموندلو. ددې زمانې د آغاز سره د انساني تهذیب هغه دور شروع شو. چه هغې ته نن ورځ موږ د خپل مفهوم مطابق تهذیب وایو. ددغه وخت نه لوئې لوئې ښارونه آباد شول. حکومتونه قائم شول. قوانین تیار شول. د مذهبونو تنظیمونه اوشول. خلق په مختلفو طبقو کښې وېش شول. غرض دیو منظم او مصروف ژوند آغاز راوشو.

د تاریخ ماخذ :- د پخوانۍ زمانې لیکونه په تیره تیره ډبرلیکونه (کتیبې) چه باقي پاتې دي. د پخوانۍ زمانې د تاریخ د پاره بهترین ماخذ ګڼلې شي. څه موده اګاهو د پخوانۍ زمانې د تاریخ د پاره بهترین ماخذ ګڼلې شي. څه موده اګاهو د پخوانۍ زمانې د قامونو او د هغوی د تاریخي حالاتو معلومولو په حقله د کتابونو نه بغیر بل څه چاره نهٔ وه. ولې نن زمانه کښې ډیر داسې څیزونه دي چه د هغې په لیدلو او په هغې باندې د غور او فکرکولو نه پس د تاریخ عالمانو ته ډیر څهٔ په لاس راغلي دي. او راځئ او په دې نشان د زړې زمانې په تاریخي معلوماتو کښې بے کچه زیاتې شوې دې. دغه څیزونه د پخوانۍ زمانې کنډ والې. ښیخ نښانې، ډبرلیکونه، انځورونه، تصویرونه د پخوانۍ زمانې د خلقو اوزار، د کور سامانونه، لوښي کودې (سکوکات) خطونه، ژبې او مذهبي کتابونه دي. ددې غرض د پاره عالمان داکوشش کوي. چه ترهرڅو مره کیدې شي. د پخوانو قامونو زړې نخښې نښانې او آثار معلوم کړي. ددې مقصد د پاره ډېر یخرڅونه کوي او ډېر زیاں اوکړاؤ تیروي. د زړو ښارونو او کنډوالو لټون کوي. او بیا د خپلې مطالعې او تحقیقاتو نه ډېرې اهمې نتیجې حاصلوي.

# دوادئ سنده تهذیب

دشلمې صدئ دآغاز پورے دپخوانئ زمانے دتاریخ پوهنوالو دخپلو ذریعواو وسیلو مطابق په وادئ نیل، وادئ فرات (مصر او عراق) او آسیائے غربي په مختلفو نقاطو کښې دخپلو تحقیقاتو په نتیجه کښې دا خبره ثابته کړه . چه د آسیائے غربي تأریخي زمانه دسنه ۳۵۰۰ ق-م دخواوشا نه شروع کیږي . ددے نه پس دعالمانو دنورو نورو تحقیقونو په نتیجه کښې چه په بین محرین (عراق) او فارس کښې او بیا دسنه ۱۹۲۲ء نه روستو په وادئ سنده او بلوچستان کښې، او په سنه ۱۹۳۳ء کښې درود آموپه قطب په "آنو" کښې او بیا په سنه ۱۹۳۶ء کښې په افغاني سیستان کښې شوی دی . دا سے شواهد میدان ته رااووتل چه په عمومی ډول په ډیرو خبرو کښې سره یو شان وو . او عالمان په دے خبره قائل شول چه پنځه شپږ زره کاله اګاهو یو دا سے لوئے مدنیت موجود وو . چه دهغ لمن د وادئ نیل او سپین سمندر (بحر ابیض دغاړو نه واخلے دګنګا او اباسیند ترګټیو پورے خوره وه . ددے تمدن بنیادی خبرے یو شان وے . اګرچه په هر ملک کښې دخپل طبعی محلِ وقوع له کبله په کښې څځے مقامی خصوصیات هم موجود وو .

لکه چه پورته اووئیلے شول . دسنه ۱۹۲۲ء نه په وروستو دا باسیند په ګټئ کښې دقبل التاریخي دورے څیړنه سروع شوه . او دسرجان مارشل دنظر لاندے دموهنجو دارو (ضلع لاړکانه . سنده) او هړپه (ضلع منټګمری) دمقاماتو دڅیړنے او تحقیقات کارشروع شو . او دا معلومه شوه چه درے څلور زره ق-م زمانه کښې په دے علاقه کښې یو ځلاند مدنیت موجود وو . په دے زمانه کښې د فرات او نیل په وادیانو کښې هم دغه قسم سرګرمئ جاری وے .

د وادی سنده د تهذیب دوه لوئے مرکزونه هړپه او موهنجو ډارو وو . ددے دواړو ښارونو ترمینځه دڅلورو سوو میلو فاصله ده . ددے مرکزونو په وجه دے ته دوادئ سنده تهذیب وائی . ولے دا سے معلومیږی چه دا تهذیب په ډیره لویه علاقه خور وو . او ددے نښے نښانے په برصغیر کښې تقریباً په شپیتو

نورو ځایونو کښې هم موندلی شوی دی۔ ددے نه دا څرګندہ دہ چہ د نیل او فرات د تهذیبونو په مقابله کښې، دا تهذیب په یوه لویه رقبه کښې خور وو۔

د موهنجو داړو او هړپے کشفیاتو په تاریخ کښې یو نوے باب آغاز کړو۔ د سرجان مارشل په خیال کښې دا تمدن هغه کسانو سره تعلق لری۔ کوم چه د آریاؤ د راتلو نه وړاندے په دے زمکه استوګن وو۔ ددے دواړو ښارونو کندو والو دا خبره څرګنده کړه۔ چه دا وادئ سنده استوګن د نن زمانے نه پنځه شپږ زره کاله وړاندے زمانه کښې دیو داسے لوئے او ممتاز تهذیب او ثقافت خاوندان وو۔ چه په هراړخ کښې ئے د هغه زمانے د نورو ملکونو د تهذیبونو سره سیالی کولے شوه۔ او د نوی عهد هجری مظاهر په دغه زمکه کمال ته رسیدلی وو۔ او که چرے په ژور نظر سره او کتلے شی نو دا به واضحه شی چه په دغه دوره کښې د وادئ سنده استوګنو یو باقاعده او منظم ژوند تیرولو۔ د موهنجو داړو او هړپه دواړو ښارونو نقشے په ډیر غور او فکر سره تیارے شوے وے۔ د هر ښار ګیره درے میله وه۔ په هر ښار کښې یو مضبوطه قلا وه۔ کوے کندو والے او څنیے نښانے چه موندلے شوی دی، په هغو کښې دغلے انبارخانے هم دی۔ دا انبارخانے په داسے ډول جوړے شوی وے۔ چه په هغے کښې به غله د زیم او چینجی نه په امن وه۔ دا غلے به شاید چه په مالیه کښې وصولیدلے۔ د کاریګرانو او مزدورانو د استوګنے د پاره په قطارونو کښې بارکونه جوړ شوی وو۔ د غلے اوړلو د پاره لوئے لوئے دونکاچ جوړے وے۔ ددے ښارونو مکانونه د پخو خښتو نه جوړ وو۔ او اکثر به دوه منزله وو۔ په مکانونو کښے به غسل خانے او حمامونه موجود وو۔ د کور نه د اوبو وتلو د پاره لښتی او نالئ جوړے وے۔ په مکانو نو کښې د هوا د تلو راتلو او د صحت د اصولو خیال ساتلے شوے وو۔ په ښار کښې ډیرش ډیرش فټه پلن سړکونه موجود وو چه په خښتو پاخهٔ شوی وو۔

ولے سره ددے ټولو خبرو ددے پراسرار تهذیب په حقله د وادئ نیل او وادئ فرات د تهذیبونو په مقابله کښې ډیر کم معلومات په لاس راغلی دی۔ تر اوسه پورے عالمان ددے خلقو د رسم الخط په لوستلو نهٔ دی قادر شوی۔ او دا هم په وثوق سره نهٔ ده معلومه چه ددے تهذیب او وادئ فرات د تهذیب ترمینځه څه تعلق وو۔ اګر چه د دواړو تهذیبونو ترمینځه څه تعلق وو۔ اګر چه د دواړو تهذیبونو ترمینځه

د څه نه څه تعلق په حقله شهادتونه موجود دی۔ ولې د دے ماهیت لا ترا وسه واضح نهٔ دے۔

# د وادئ سندھ د تهذیب امتیازات

داخبره قرین قیاس ده چه د وادی سندھ مدنیت په عمومی ډول د آسیائے غربي او مصر د مدنیت او ثقافت سره موافقت لرلو۔ ولې په دے تهذیب کښې څه داسے امتیازی خبرے وے چه هغه د مصر او سمیریانو په مدنیت کښې په نظر نهٔ راځی۔ لکه په مثال کښې د پُټیے پیژندل او د هغې کرل، د غه څیز د وادئ سندھ سره مخصوص وو۔ او مصر او عراق ورته دوه زره ق۔م پورے لا آگاه نه وو۔ دغه شان د موهنجو ډارو او هړپے عونډے لوئے لوئے ښارونه او د استوګنو کشاده او هوار کورونه، د دوی حمامونه وغیره داسے څیزونه دی چه د مصر او عراق قبل التاریخ دوره ترے خالی معلومیږی۔

په مصر او عراق کښې به زیات دولت په درمسالونو کښې او د باچایانو په مقبرو لګیدلو۔ او د عام اولس ژوند به ډیر په تنګسیا او کړاو تیریدو۔ د بامبړانو او حکومت د واکدارانو او د اولسی خلقو په ژوند کښې د زمکے اسمان فرق وو۔ په مصر او عراق کښې اولسی خلق د ځنے بنیادی حقوقو نه هم محروم وو۔ د دے برخلاف په وادئ سندھ کښې بهترین عمارتونه د عام اولس په ولقه کښې وو۔ او د مختلفو طبقو ترمینځه د دولت او معاشرت له مخه څه خاص امتیازات نهٔ وو۔ د وادئ سندھ د تهذیب یو خاصیت دا هم وو چه په دے تهذیب کښے به اکثر خلق په کلو کښے اوسیدل۔ دا کلی به د ښار د مرکز نه چارچاپیره اباد وو۔ دے مرکزونو به د دے خلقو په مروجه ژوند کښې ډیر اهمیت لرلو۔ د سومیری تهذیب خلق به اکثر په ښارونو کښی استوګن وو۔ سومیری تهذیب متحرک زیات او مضبوط کم وو۔ ولې د وادی سندھ تهذیب په خپل کلی وال ماحول کښی پرسکون او مضبوط وو۔ او دغه د دے تهذیب امتیاز دے۔

# تجارتی تعلقات

بهرحال د وادئ سندھ او وادئ فرات ترمینځه دا وچ او اوبو په لاره تجارتی تعلقات هم قائم وو۔ د وادئ سندھ نه به مالوچ، ساده او رنګینه تارین رختونه وادئ فرات

ته استوله شول - ددے خبرے شهادتونه موجود دی چه د وادئ سنده د سوداګرو واړهٔ تولګی به په عراق کښی د تجارت په غرض ډیره وو - دایشیا د نورو ملکونو سره هم دا خلق په تجارتی تعلقاتو کښی ګڼلی وو - دے خلقو به غالباً چه تانبه د راجپوتانے، جنوبی هند او افغانستان نه حاصلوله - سیکه به ئے د راجستهان (راجپوتانه) افغانستان، ایران او جنوبی هندنه، دغه شان سرهٔ زر به ئے د میسور او افغانستان نه راغونبتل - د وادئ سنده او وسطی ایشیا د تجارتی تعلق مرسته ددے خبرے نه هم کیږی چه په قبل التاریخی دوره کښی چه په کوموکومو ځایونو کښے په زیوراتوکښی د زمرد غټی موندلے شوی دی - نو عالمانو دهغے نه دا نتیجه اخذ کړی ده - چه دغه ځایونه د وسطی ایشیا سره په تجارتی تعلقاتو کښے ګڼلی وو - دا کانړے یعنی زمرد د تاریخی شواهدو په رڼا کښے د وادئ نیل او وادئ فرات په مختلفو ځایونو کښے موندلے شوے دے - ددے نه دا قیاس مرسته موی. چه د وسط ایشیا او ددے درے واړو ملکونو ترمینځه تجارتی تعلقات موجود وو - ددے تجارتی تعلقاتو ثبوت دهغه مهرونو نه هم معلومیږی کوم چه په موهنجو داروکښی موندلی شوی دی - دا مهرونه هم هغه شان دی کوم چه په ایران او عراق کښی هم موندلی شوی دی - او ددے نه ددے ملکونو ترمینځه ټک راټک اودتعلقاتو قیام مرسته موی -

د وادئ سنده د خلقو د استوګنے او عام ژوند نه دا ښکاریږی - چه دا خلق د جنګونو په نسبت په تجارت زیات مئین وو - دے خلقو د کچ (رناپ) او تللو (تول) په حقله درجه په درجه یو داسے سنهٔ نظام قائم کړے وو - چه هغه د ډیرے ستائینے وړ دے -

ولے داسے معلومیږی چه دا خلق په فنی مهارت کښی نسبتاً وروستو وو - دوی دخپل تهذیب په اوږده دوره کښی خپلو آلاتو او اوزارو ته څه خاصه ترقی ورنهٔ کړے شوه - دوی د خاورینو لوښو په جوړولو کښے هم څه تبدیلی رانهٔ وستله - د دوئ ثقافت نه چم شوے ، شان وو - البته دا درست ده چه په فائده منوکارونو کښی د دوی د هنرمندئ ډیرمثالونه موجود دی - لکه هغه مهرونه چه په هغے کښی د کُب دارو غویانو تصویرونه کنستی شوی دی - د سرجان مارشل د وینامطابق دا مهرونه د هیکل تراشئ د صنعت له مخه د ډیرے ستائینے وړ دی - دغه رنګ په

تعمیراتو کښې د حفظان صحت د اصولو خیال ساتل، د ښارونو په نقشو کښې د دوئ کمال، په ذراعت کښې د دوی ترقي او د دهاتونو د ویلي کولو په صنعت کښې د دوی مهارت داسې کارونه دي چه د قبل دور دي۔ سره ددې دا هم درست ده چه دوی په خپلو عمارتونو کښې نه خو د څه خاص زیب وزینت نه کار اخستې وو۔ او نه په هغې کښې د عظمت او شان څه ښکاره وه۔ د دوئ په هیکل تراشئ کښې هم د حسن او ښکلا یو ساز وار احساس موندے شي۔ به هرحال په مجموعي حیثیت سره دا خلق د فني قابلیت خاوندان وو۔

د وادئ سنده د خلقو په نسبت د عالمانو عام تاثر دا دے چه دوی امن پسند، او سوداګر طبیعته خلق وو۔ څکه خو دوی په فائده مندو کارونو کښې مشغول وو۔ او په دوئ کښې د تخیل د کم والي وجه هم دغه خبره وه۔ دا خلق د آریاؤ د لاسه تباه شول۔ د آریاو په مقابله کښې ددے خلقو تیښته کول یو طبعي امر وو۔ څکه چه آریا سخت او زیګ خلق وو۔ د هغوی د جنګ وسلے او سازوسامان ددوی نه ډیر غوره او ښه وو۔

# بلوچستان کښې د قبل التاریخي دورے پلټنه

څه رنګ چه د وادئ سنده او وادی فرات د تهذیبونو ترمینځه د تعلق په حقله عالمان په وثوق سره څه نه شي وئیلے۔ دغه شان د وادئ سنده د تهذیب او بلوچي سطح مرتفع د تهذیب ترمینځه د تعلق په باب کښې هم په وثوق سره څه نه شي وئیلے کیدے۔ د پاکستان د جوړیدو نه پس د نن نه لس دولس کاله اګاهو د امریکې او پاکستان د آثار قدیمه د ماهرینو یوے مشترکه ډلے په قطبي بلوچستان کښې د کوئټے په کخئ کښې د قبل التاریخي دورے پلټنه کړې ده۔ د خپل تحقیقي کار په دوران کښې د کوئټے نه څو میله په قطب قبله د کیل کل محمد سره نزدو د یوے ډیری د کنستلو په دوران کښې دوی د داسې پخوانو خلقو ښیخ ښیلنے معلومے کړے چه هغوی د خاورینو لوښو جوړولو نه هم نا بلده وو۔ د دے خلقو اوزار د کاڼي چاقوان، د هډوکو ستنې او د نیزے په شان څه نوکه ورڅیز ونه وو۔ البته دا خلق د کورونو په ودانولو ښه پوهیدل۔ په عراق، شام، فلسطین او

ترکیه کښې هم په ډیرو ځایونوکښ د تحقیقات نه پس دا خبره معلومه شوی ده چه کم وزیات د نن نه شپږ زره کاله آګاهو په دې ملکونوکښ هم داسې خلق آباد وو چه فاؤرین لوښی جوړول ئې زده نهٔ وو - د دوی اوزار به هم دغه شان وو لکه چه پورته بیان شول - دوی به هم په کلوکښ اوسیدل - ولې په دې برصغیرکښ د داسې خلقو دآبادئ درک په اول وارهم په دې علاقه کښ معلوم شو - دکیل ګل محمد او د غزني آسیا د دې قسم ښځو ښانو نه عالمانو دا نتیجه هم اخذکړې ده چه د کیل ګل محمد ډیرو پخوانو استوګنو به ګڼې بزې او نورځناورهم پالل او شاید چه غنم اوربشې به ئې هم کرلې.

د دې علاقې وړومبي استوګن د فاورینو لوښو جوړولو دکسب نه نا بلده وو. ولې د زمانې په تیریدو سره په قلاره قلاره داکسب دوی زده کړو - او ورو وروئې ترقي هم اوکړه - او دلې دوه قسمه لوښو رواج اوموندلو - دا لوښی د رنګ، رغونډې او ښځو ښانو له مخه داوسنۍ زمانې د لوښو سره سیالي کولې شي - په دې لوښوکښې وړومبی قسم د هغه لوښو دې چه د آثار قدیمه ماهرین ورته د "ژوب" لوښی وائي - ځکه چه دا لوښی به د ژوب اولورالائي په واديانوکښ ډیراستعمالیدل د دې لوښو زمکه پخه سره وه - اود پاسه پرې ښځې ښانې دی - دا ښې ښانې په ځینو لوښو باندې اقلیدسي شکلونه شان معلومیږي - په ځینو لوښو د هوسیانو او کبُ دارو غوایانو تصویرونه دي - چه ډیرخوندناک ښکاري - بل هغه قسم لوښي دي چه دکوټې دلوښو په نامه یادیږي - د دې لوښو زمکه تته خړ ښنه ده - او ښځ ښانې پرې کږې دي -

دکوټې او سادات د پخوانو خلقو په کورونوکښې د کڼو بزو د هډوکو د پرېوانۍ نه دا خبره ثرګندیږي چه د غه خلق به غوښې په خوراک ډیر میئین وو - دغه شان د نازکو کنډولونو، پیالو او ګلاسونو نه هم دا قیاس مرسته موږ چه دا خلق د شرابو څښلو ډیر شوقین وو - دا خلق داوسپنې نه نا بلده وو - په فلزاتوکښې ئې صرف تانبه او سیکه پیژندله - د دوی اوزار به اکثر د پوست کاڼي او یا د هډوکو نه جوړ وو - دوی به خپله غله په بغرئ کښې تکوله -

د دې خلقو د قد بوُت او د مخ دکړدې په حقله هم څه معلومات نیشته ګمان کیدې شي چه د دې خلقو به دا رتو بیرتو او سستوکشاده وُ جامو په ځانې دکو ټ

په دستور څه جاے اغوستلے۔ د دے خلقو د آرائش او د ول سینګار سازوسامان ډیر ساده معلومیږی۔ ولے بیا هم دوی په دے فن کښی ترقی کړی وه۔ دا خبره یواځے دا نه چه د رنګینه خاورینو لوښو نه څرګنده ده۔ بلکه د دے ثبوت د رِبته الانواعو اوکُب دارو غوایانو دوړو وړو بوتانو نه هم څرګند دے۔

په دے مهم کښی د عالمانو د حیرانئ خبره داوه چه دلته به خاورینو لوښو باندے ماهرینو څه داسے نښخ نښانے معلومے کړے چه هغه د کاریګرو څه نښانات دی۔ او د کوټے او سادات دواړو علاقو په لوښوکښی لیدلی شوی دی۔ دا نښخ نښانے د روی حروف هجا، وی (v)۔ ډبلیو (W)۔ اے (A)۔ ټی (T) او نورو حروفو سره مشابهت لری۔ داسے معلومیږی چه دا نښخ به د لوګی یا تیرے څوکے په څه څیز د لوښو د پاسه هغه وخت شوی وی۔ چه خاوره به لمده وه۔ دا نښخ د لوښو په غړی یا وچ شوی دی۔کیدے شی چه دا د کاریګرو څه نښخ وے۔او بیا د لوښو د خاوندانو څه خاصے علامے وے۔ یو خیال دا هم دے چه شاید دا د جادو څه خاصے علامے وی۔ چه تر اوسه پورے یو شان نخښے موندلی شوی دی۔ نو په قطعی ډول دا وئیل ګران دی۔ چه دا به ګوندے د یو پخوانی رسم الخط اجزا وی۔ البته دا خبره ظاهره ده چه د دغه نښخو نښانو په آسانئ سره د لیکنے د ایجاد په لور رهنمائی کولے شوه۔ دلته دا خبره هم یاده ساتل پکار دی۔ چه دا نښخ نښانے د هغه زمانے د تصویری رسم الخط نه چه په دغه زمانه کښی په وادی سنده، اسیائے صغیر او مشرق قریب کښی جاری وو۔ بالکل جدا او مختلف دی۔

د کوټے د دے دورکومه زمانه چه د آثار قدیمه ماهرینو متعین کړی ده۔ که هغه اندازه هم درست وی نو بیا هم دا نښخ نښانے د یو غیر تصویری رسم الخط په لور چه پوره پوره رواجی درجه ته موندلی وه۔ یو ډیر زور مثال دے چه په بلوچستان کښی موندلے شوے وے۔ د دے قسم نښخ نښانے بل هیڅ ځائے کښی لا نه دی موندلی شوی۔ دا یو داسے انکشاف دے چه د آثار قدیمه د ماهرینو توجه به خپل ځان ته راکاږی۔ او د هغوی د شوق او څیړنے جذبه به راوپښه کړی۔

دا خبره هم د فکر وړ ده چه په انګریزی دورحکومت کښی د سرحدی پښتنو په علاقه کښی د قبل التاریخ دورے د څیړنے په مقله څومره چه کار ده۔ هغومره توجه نه ده شوی۔ د دے پښتنو په علاقه کښے وادئ سوات، وادئ پلیښور، تیراه، کرم

او وادۍ ګومل داسې علاقې دي چه د خپلې ښې آب وهوا او زرخیزۍ له کبله دانساني استوګنې دپاره ډیرې موزونې دي. احتمال لري چه څه رنګ په قبل التاریخي دوره کښې په وادۍ سند ه او د بلوچستان په سطح مرتفع کښې انسانانو دعهد حجری او برنجي دورې تیرې کړې دي. دغه رنګ به په دې علاقوکښې هم انساني سرګرمۍ جاري پاتې شوې وې. او حجري او فلزي دورې به ئې تیرې کړې وې. دقیام پاکستان نه پس دځینې اهمو معاملاتو او مصروفیاتو له کبله ددې علاقو د تاریخ قدیم دڅیړنې په لور پوره پوره توجه نه ده شوې. لیکن اوس اوس په پیښور یونیورسټۍ کښې د آثار قدیمه د تعلیم څانګه قائمه شوې ده. او توقع کیدے شي چه ددې څانګې پوهان او عالمان به ددې علاقو د قبل التاریخي دورې په حقله څه څیړنه اوکړي. او د دې په نتیجه کښې به ددې علاقې د قدیم تاریخ په حقله څه معلومات حاصل شي.

غرض دا خبره ظاهره ده چه بنیادم په ډیرې پخوانۍ زمانه کښې دوحشیانو او ځنګلیانو په شان ژوند تیرولو. او تکونه کاله هم په دې حالت کښې وو. ورو ورو بنیادم د ترقۍ په لار قدم کیښود او د خپل ژوند په لارو چاروکښې ئې تبدیلي پیدا کړه. او دخپل ضرورت د سامانونو تکمیل ئې اوکړو. او د تهذیب په دائره کښې وردننه شو. دا هم یو حقیقت دے چه دټولې دنیا بنیادمو په یو وخت او یو رفتار ترقي نه ده کړې. ددنیا ځنې قامونه ډیر زر متمدن شول. او ځنې ډیره موده پس. او ځینې قامونه اوس هم داسې دي چه لا تراوسه ځنګلیان او نیم ځنګلیان دي.

د بنیادمو د توکم ویش:- ټول بنیادم اګرچه د پیدائش له مخه یو شان دي. ولې د وګړو په قد بوټ کښې، د کوپړۍ په جوړښت کښې، د مخ په کړه وړه او موشادوکښې، دمخ او څرمنې په رنګ کښې، په ویښتو او سترګوکښې یو تر بله څرګند فرق لري. پس د انسانانو دکومې ډلې هر فرد چه په خپلوکښې یو تر بله یو شان ښکاري. هغه ډله د یو نسل خلق ګڼلې شي. په دې ډول ټول بنیادم په څلورو نسلونو کښې ویش شوي دي.

(۱) سپین توکم (نسل):- ددې خلقو رنګ او څرمنه سپینه، پوزه ئې دګټه لوړه نرۍ، شونډې ئې باریکه نرۍ نرۍ، و ویښته ئې پاسته او کانګوتي، ږیرې ئې ګڼې ګورې. ددې نسل خلق په یورپ، قبلشیز ایشیا او قطبي افریقه کښې اوسي.

(۲) زیړ توکم:- ددوی رنګ او څرمنه پیکه شان زیړه، سترګې ئې په کولوکښې ورننوتي او وړې وړې، ویښته ئې سخت او زیګه، ږیرې ئې رنګۍ رنګۍ وي. دچین

او جاپان استوګن ، مغل او ترک ددے نسل سره تعلق لري. ددے نسل خلق د ایشیا په قطبي او خا تیزو ملکونو کښے اوسيږي.

(۳) تور توکم :- دا خلق په غرمنه او تور رنګ ، شونډے ئے غټے غټے ، ویښتهٔ ئے زنګ او د وړئ په شان سخت وی. ددے نسل اکثر خلق په افریقه کښے اوسي.

(۴) سور توکم :- ددے خلقو د غرمنے رنګ د تانبے په شان سور وی. ددوی داندامونو جوړښت د زیړ نسل د خلقو سره سمون خوری. دامریکے ځوانی خلق ددے نسل سره تعلق لري.

د تور او سور توکم قامونو او اولسونو ډیره لږه ترقی کړی ده. بلکه ځنے لابیخی د ځنګلیانو په شان ژوند تیروی. ځکه ددوئ تاریخ نیشته. زیړ نسل د ډیرے پخوانئ زمانے راسے متمدن دے. ولے ددوی تمدن د مودو مودو راسے په یو حال ولاړ دے. او څه زیاته ترقی ئے نهٔ ده کړی. البته کوم نسل چه د ټولو نه اول او د ټولو نه زیاته ترقی کړی ده. هغه سپین نسل دے. لیکن عالمان او مؤرخین دغه سپین نسل په دوؤ څانګو کښے ویشی. یوے څانګے ته "آریائی" او بلے ته "سامی" وائی.

ولے ددے دواړو څانګو بیلتون د مخ په کړده، کړهٔ وړهٔ ، موشادے او د بدن د نورو اندامونو په جوړښت نهٔ کوی. بلکه په دوئ کښے زیات فرق او بیلتون د دوی د صفاتو ، حالاتو او د ژبو داختلاف په اعتبار کوی. لکه د آریائی قامونو ژبو ته که په ژور نظر اوکتلے شی. نو که په ظاهره کښے دا ژبے د یوے بلے نه فرق لري. ولے په حقیقت کښے په خپلو کښی یو تر بله ډیرے نزدو دی. دغه حال د سامی ژبو هم دے. ولے د آریائی ډلے ژبے او د سامی ډلے ژبے په خپلو کښے هیڅ سمون او مطابقت نهٔ لري.

په دے کتاب کښے چه د کومو خلقو (یعني پښتنو) تاریخ بیانیږی. هغوی هم د سپین نسل سره تعلق لري. لیکن د ځنے عالمانو په خیال کښے دوی په سامی ډله کښے شامل دی. او ځنے نورے ئے په آریائی ډله کښے شمیری. ددے په حقله به سبا غلی لوستونکی د دواړو ډلو نظریات او افکار اولولی. او په خپله به یوے نتیجے ته اورسی.

# دپښتنو د نسل څیړنه

## پښتانۀ څوک دی (۱)

پښتانۀ څوک دی؟ دغه سوال دے چه دځه مودے نه دخپلو او پردو ترمینځه دبحث موضوع دے. ډیرو عالمانو چه په هغې کښې مغربي عالمان هم شامل دی. او د پښتنو خپل لیکوال هم، ددے سوال د حل کولو کوشش کړے دے. او ډیرڅه ئے لیکلی دی. ولے سره ددے ډیرو لیکونو د موجودګئ ددے سوال یو داسے جواب چه د ټولو خلقو پرے تسلی اوشی. یاکم ازکم د ډیرو خلقو زړۀ پرے او بۀ اوخښی او آمنّا پرے اوکړی. لا تر اوسه نۀ دے موندلے شوے. او ددے اختلافاتو په نتیجه کښې دپښتنو داصل نسل مسئلے دیوے ورانے ماشورے شکل اختیار کړے دے.

که چرے موږ په سړه سینه دے خبرے ته فکر اوکړو. نو دا ظاهره ده. چه د پښتون قام داصل نسل مسئله نۀ خوځه مذهبي مسئله ده چه په مذهبي نقطهٔنظر ددے تحقیق او څیړنه اوشی. او نۀ دا مسئله څه سیاسی مسئله ده. چه خوامخواه ددے د سیاست او یوے خاصے پالیسئ په نقطه نګاه سره موږ کونو معلوم کړے شي. ټول پښتون قام د خدائے پاک په فضل مسلمان دے. او دا د پښتون قام یو امتیازی صفت دے. چه پښتون به هرو مرو مسلمان وی. پښتون عیسائی، پښتون هندو، پښتون یهودی نۀ شی کیدے. یا داسے به اووایو چه د مذهب په بدلولو سره پښتون بیا پښتون نۀ شی پاتے کیدے. او هم یو روڼ حقیقت دے چه اسلام د رنګ او نسل د امتیاز روادار نۀ دے. د اسلام په دربار کښې حبشی بلال[رض] د ابوجهل قریش نه زیات عزیز، زیات اصیل، زیات شریف او ډیر نیکو کار دے. نسبي شرف ته اسلام نه څه اهمیت ورکړے دے. او نۀ ورکوی. بلکه د اسلام منشا د نسبي شرف او نسلي افتخار بُت شکنی وه. لکه په قول د علامه اقبالؒ مرحوم ے

خویشتن را تُرک وافغان خوانده‌ٔ　　وائے برتو آنچه بُودی مانده‌ٔ

هم په دے ډول دپښتون د نسل مسئله څه سیاسی مسئله هم نۀ ده. دا درست

ده۔ چه د یو قام د نسلی تحقیق په تهه کښې د « وحدت روح » د داسې سامان دموندلو امکان وی۔ چه هغه په سرسری نظر سره نهٔ شی موندلے۔ ولے د دے حقیقت نه هم انکار نهٔ شی کیدے۔ چه په علمی او سیاسی لحاظ دیو برتر قام سره محض په نسلی اشتراک پښتون قام هم هغه شان علمی او سیاسی برتری نهٔ شی موندلے، ترڅو چه په دوی کښې خپله هم هغه شان صلاحیت او استعداد پیدا نهٔ شی۔ دنیا دعمل ځائے دے۔ هغه ورځ تیرے شوی دی۔ چه محض په نسلی افتخار به ورځ تیریدلے. پښتو که نسلاً بنی اسرائیل شی نو هغه نن ورځ دیهودو سره په دولت، علمیت او تجارت کښې سیاسی نهٔ شی کولے۔ نو محض دیهودو سره په نسلی اشتراک دپښتون فخر به تر کومه جائز وی۔ هم دغه رنګ که پښتون آرین النسل ثابت شی نو هرکله چه پښتو قام د جهد للبقا په منډه کښې دآریائی قامونو سره سیال نهٔ وی۔ نو دهغهٔ آریا توب هغهٔ ته کومه فائده ورکولے شی؟

بِنا په دے د پښتون قام د اصل نسل مسئله بیخی یو تحقیقی او تاریخی مسئله ده۔ او د تحقیق او معقولو تاریخی شواهدو په رڼا کښې ئے حل کول پکار دی۔ خواه چه دا تاریخی شواهد له هرچا نه اوله هرخوا نه په لاس راځی۔ ولے چه معقول او مسلّم وی په مصداق د اُنْظُرْاِلیٰ مَا قَالَ وَلَا تَنْظُرْاِلیٰ مَنْ قَالَ۔ د دے معروضاتو نه پس به بشهٔ داوی چه د پښتنو د اصل نسل په باب کښې د عالمانو تحقیقات او نظریات بیان کړے شی۔ او بیا د تاریخی شواهدو په رڼا کښې د دے نظریاتو جاج واخستے شی۔

اوله نظریه:۔ د پښتنو د اصل نسل په باب کښې یوه مشهوره او پخوانئ نظریه داده چه پښتانهٔ په اصل کښې بنی اسرائیل دی۔ دا نظریه په اول ځل په « مخزن افغانی » نومے کتاب کښې پیش شوی ده چه د مغل باچا جهانګیر په زمانه کښې نعمت الله هروی

---

ل‍ه خواجه نعمت الله د مغل باچا جهانګیر د دربار واقعه نویس وو۔ دهغهٔ پلار خواجه حبیب الله داکبر په دربار کښې ۳۵ کاله ملازم پاتے شوے وو۔ د « مخزن افغانی » تالیف اګرچه د خواجه نعمت الله کارنامه ګڼلے شی۔ ولے د دے کتاب په تالیف کښې هیبت خان کاکړ چه د سمانا حاکم وو۔ دخواجه نعمت الله پخپله وائی چه ما د دے کار (مخزن افغانی تالیف) د پاره د نواب خان جهان لودی په وینا ملا او تړله۔ او په دے کار کښې هیبت خان بن سلیم خان د سمانا زما قابل قدر مدد اوکړو۔ دا سړے د خان جهان لودی ملازم وو۔ او دهٔ د پښتنو مبهمو او خورو ورو شجرو ته ترتیب ورکړو۔

لیکلے دے ـ او غالباً چه په سنه ۱۰۳۰ھ / ۱۶۱۲ء کښې مکمل شوے دے ـ دا لیکوال دجهانګیر باچا د مشهور سپه سالار خان جهان لودی سره وابسته وو ـ ددے نه پس چه د پښتنو دخپلو لیکوالو له خوا هر څومره تاریخونه لیکلی شوی دی ـ لکه «تاریخ مرصع» د افضل خان خټک «خلاصته الانساب» دحافظ رحمت خان ـ «صولت افغانی» د زر داد خان ناغړ «توزک افغانی» «شوکت افغانی» «خورشید جهان» او داسے نور ـ دغه ټولو لیکوالو هم دغه نظریه بے دڅه تنقید وتنقیح نه مستنده ګڼلی ده ـ او دخپلو تاریخونو بنیاد ئے په دے نظریه ایښے دے ـ ددے پورته کتابونو نه علاوه د شلمے صدئ مسیحی په دوئمه ربعه کښ سید عبدالجبار شاه ستانوی هم یوه رساله د «بنی اسرائیل یا ملت افاغنه» په نوم لیکلی ده ـ چه په هغے کښے هم ددے نظرئے مرسته شوی ده ـ او ښاغلی قاضی عطاء الله خان مرحوم هم دغه نظریه منلی او په خپل کتاب دپښتنو تاریخ کښے ئے لیکلی ده ـ په مستشرقینو کښے سروليم جونز، الیګزینډر برنس، او مسټر راورټي هم ددے نظرئے مرسته کړی ده ـ دوی هم وائی چه پښتانه نسلاً بنی اسرائیل دی ـ

اول ددے نه چه دپښتون دنسل په حقله ددے پورته مشهورے نظرئے په صحت دتاریخی شواهدو په رڼا کښے بحث اوشی ـ دا به ښه وی چه دا نظریه هم دخپلو واضعینو په الفاظو کښے بیان کړے شی ـ په دے غرض چه ښاغلی لوستونکی ترنه هم په تفصیل سره آګاه شی ـ

د مخزن افغانی او ددے قسم نورو ټولو لیکوالو په قول د پښتنو وړومبے مورث اعلی ساؤل (ملقب به طالوت) اسرائیلی دے ـ دا سړے دحضرت یعقوب[ع] (اسرائیل) په دولسو ځامنو کښے دبن یمین په اولاد[ل] کښے دے ـ دا مؤرخین وائی چه ساول دحضرت شموئیل[ع] دپیغمبری په زمانه کښی دبنی اسرائیلو په درخواست دهغوی بادشاه مقرر شو ـ او بیا دخدائے[ج] په حکم او دحضرت شموئیل[ع] په هدایت دعمالقه قام

---

[ل] ځینے لیکوالو طالوت دحضرت اسرائیل دیهودا نوے ځوئے په اولاد کښے ګڼلے دے ـ لیکن دتورات په شهادت طالوت دبن یمین په اولاد کښے دے ـ

[ع] دا نامه قاضی عطاء الله خان مرحوم په خپل کتاب دپښتنو تاریخ کښے اسماعیل لیکلی ده ـ په اصل کښے دا نوم شموئیل دے ـ دا سړے دعیلی کاهن نه پس د بنی اسرائیلو نبی وو ـ (سموئیل ص ۳۶۱).

جنګ ته روان شو- د عمالقه قام بادشاه جالوت نو میده ؤ- چه دخپل جسمانی زوراو طاقت په وجه چا دهغهٔ مقابلے ته مخ نهٔ نیولو- طالوت دخپل ځان سره درے سوه او دیارلس تنه جنګی ځوانان پاتے شوی وو- او دهغهٔ نور فوځ دهغهٔ دنا فرمانۍ په وجه د جنګ جوګه نهٔ وو پاتے شوے- جالوت چه میدان ته رااووت نو دهغهٔ مقابلے ته د بنی اسرائیلو له خوا څوک نهٔ وتل- آخر طالوت په خپل فوځ کښے دا اعلان اوکړو- چه "کوم سړی چه د جالوت سر پریکړو- او ماله ئے راوړو نو زهٔ به خپله لور په نکاح هغهٔ ته ورکړم- او د بادشاهۍ په کارو بار کښے به ئے دځان سره شریک کړم"-

ددے اعلان نه پس حضرت داؤد ؑ چه هغه وخت کښے دجالوت مقابلے ته روان شو- او جالوت ئے په یو کاڼي اوویشت او د تقه ئے مړکړو- سرئے ترینه پریکړو- او طالوت ته ئے پیش کړو- دوعدے مطابق طالوت خپله لور داؤد ؑ ته واده کړه- او د بادشاهۍ په کارو بار کښے ئے شریک کړو- ولے څه موده پس طالوت د حضرت داؤد ؑ په حقله بدګمانه شو- او دهغهٔ دمرګ په تابیا کښے لګیا شو- حضرت داؤد ؑ چه د طالوت دارادو نه خبر شو- نو د طالوت نه اوتښتیدو- ددے نه پس د طالوت بدګمانۍ نوره هم زیاته شوه- او ظلم زیاتے ئے راواخیست- ډیر بنی اسرائیل ئے اووژل- او دظلم بازارئے تودکړو- آخر څه موده پس طالوت په خپلو ظلمو نو پښیمانه شو- او د خپلو ګناهونو دکفارے په طورئے خپل سلطنت حضرت داؤد ؑ ته اوسپارلو- دغه وخت کښے د طالوت دوه بنځ امید وارے وے- دهغوی پالنه ئے هم داؤد علیه السلام ته حواله کړه- او ددے انتظاماتو نه پس دخپلو لسوځامنو سره کفارو سره اوجنګیدلو او هم په هغه جنګ کښے مړشو-

د طالوت دهغ دواړو امید وارو بنځو یو یو ځوئے اوشو- دیو نامه ارمیا او دبل نامه برخیا کیښودلے شوه- حضرت داؤد ؑ ددے ماشومانو ښه پالنه اوکړه- او څه وخت چه دوی لوئے شول نو دخپلو ذاتی اوصافو او کمالاتو له کبله برخیاؔ دحضرت داؤد ؑ وزیراعظم او ارمیاؔئے سپه سالار مقرر شو- څه زمانه پس برخیاؔ او ارمیاؔ دواړو ودونه اوکړل- او دواړو ته خدائے ج یو یو ځوئے ورکړو- برخیاؔ دخپل ځوی نامه "آصف" او ارمیا دخپل ځوی نامه "افغانا" کیښوده-

برخیاؔ او ارمیاؔ په خپله نیتهه وفات شول- او هرکله چه د حضرت داؤد ؑ د وفات نه پس دهغهٔ ځوی حضرت سلیمان علیه السلام دهغهٔ په ځائے د بنی اسرائیلو

باچا شو۔ نو حضرت سلیمان؏ د برخیا او ارمیا ځامن د خپلو پلرونو په عهدو مقرر کړل۔ یعني آصف ئې خپل وزیراعظم او افغانائې خپل سپه سالار مقرر کړل۔ د فوځې ذمه واریانو نه علاوه د بیت المقدس دتعمیر کارهم افغانا ته ورپه غاړه شو۔ او دهٔ دا تعمیر په خپل ژوند کښې سرته اورسولو۔ دآصف اتلس ځامن وو۔او دافغانا څلویښت۔ اود دوی اولاد دومره ډیر شو چه دحضرت سلیمان؏ د وفات په وخت کښې ددے دواړو قبیلو هومره طاقتوره او لویه قبیله په ټول بنی اسرائیل کښې نهٔ وه۔[۱]

د بنی اسرائیلو او بنی افغان هجرت :۔ دغه مؤرخین وائي چه دحضرت سلیمان؏ د وفات نه پس بنی اسرائیلو دخدائے نافرماني اختیاره کړه۔ اورنګارنګ ګناهونه او سرکشئ ئې شروع کړے۔ نو ددے ګناهونو په سزا کښې خدائے پاک په دوئ باندے د بابل باچا بخت نصر مسلط کړو۔ بخت نصر په یروشلم حمله اوکړه۔ په دے حمله کښې ډیر بنی اسرائیل اووژلے شول او څنے د یریو خوا بل خواته اوتښتیدل۔ ددوی معزز او د سر سړی د زرګونو په شمیر بخت نصر بندیوان بابل ته راوستل۔ او هوُرے ئې قید کړل۔ د بخت نصر په دے صدمه کښې د بنی اسرائیلو څنې قبیلې حجاز ته اوتښتیدے۔ او څنې دغور په غرونو کښې به دوی دهغه وخت د نورو مشرکانو سره تل جنګونه کول۔ ورځ په ورځ به د دوئ طاقت زیاتیدلو۔ او بیا په قلاره قلاره دکابل، غزني او قندهاره پورے ټولے علاقے دوی راالاندے کړے۔

د دوی کومے قبیلے چه حجاز ته تښتیدلے وے۔ هغوی دمکے شریفې په خوا وشا کښې ابادے شوے او دیو خدائے عبادت ئې شروع کړے وو۔

# حضرت خالد او پښتانهٔ

د حضرت سلیمان علیه السلام دوفات نه پنځلس کاله پس د حضور اکرم؊ ظهور اوشو۔ او د حضور؊ د هجرت نه اتهٔ کاله پس حضرت خالد؄ ابن ولید چه یو لوئې صحابي، دبنی اسرائیلو د قوم یو لوئې سردار او دخالدی افغانانو نیکهٔ وو۔

---

۱۔ دپښتونتاریخ قاضی عطاء الله خان مرحوم ص۔ خورشید جهان و غیره۔

رخالدی افغانان دبنګښو قبیلے ته وائی۔) د غور بنی اسرائیلو ته یوخط اولیکلو۔ چه په هغ کښے ئے دحضور انور صلی الله علیه وآله وسلم د نبوت او ظهور خبر ورکړے وو۔[1]

ددے پیغام په جواب کښے د غور بنی اسرائیلو دخپل یومشر سردار قیس په مشرئ کښے مدینے ته یوه جرګه اولیږله۔ دا جرګه چه مدینے منورے ته اورسیدله۔ نو په حضورؐ ئے ایمان راوړو۔ حضورؐ دے خلقو ته ډیره دعا اوکړه۔ ددے جرګے دمشر قیس عبرانی نوم ئے هم بدل کړو۔ او اسلامی نوم ئے ورله عبدالرشید کیښود۔ قیس سره دخپلو ملګرو دمکے په غزوه کښے هم شامل وو۔ او ډیره مړانه ئے ښکاره کړی وه۔ حضورؐ قیس (عبدالرشید) ته دملک او بطان خطا بونه هم ورکړل۔ او وئے فرمائیل چه دے به زما د دین بطان وی۔ د "بطان" لفظ دشام دخلقو په ژبه کښے سینګاوړ ته وئیلے شی۔ نو ددے مطلب دا وو چه دے به دخپلو خلقو سینګاوړ وی۔ دغه لفظ بیا ورستو دهندی خلقو له خوا پټهان شو۔

حضرت خالدؓ خپله لور ساره بی بی هم عبدالرشید ته په نکاح ورکړه۔ له هغه ځایه قیس سره دخپلو ملګرو خپلے علاقے ته راغ او د اسلام په خورولو کښے لګیا شو۔ تردے چه په ۴۱ھ کښے په یوجنګ کښے د اوواتیا ؤ کالو په عمر کښے شهید شو۔ دده درے ځامن وو۔ سړبن، غورغشت او بیټن۔ دا درے واړه سړی د موجوده پښتنو داکثرو قبائیلو مورثان اعلیٰ دی۔

د قیس عبدالرشید شجره :- قیس په څلور دیرشمه پیړئ کښے افغانا بن ارمیا ته او په اوۀ دیرشمه پیړئ کښے طالوت ته۔ په دوه څلویښتمه پیړئ کښے حضرت یعقوبؑ ته، په پنځه څلویښتمه پیړئ کښے حضرت ابراهیمؑ، او په درے شپیتمه پیړئ حضرت آدمؑ ته رسی۔ د قیس عبدالرشید نه تر طالوتؑ پورے شجره په دے شان ده:-

قیس[1] بن عیص[2] بن سلول[3] بن عقبه[4] بن نعیم[5] بن مره[6] بن هبذر[7] بن سکندر[8] بن رمان[9] بن عین[10] بن بهلول[11] بن سلم[12] بن صلاح[13] بن قاروح[14] بن عتیم[15] بن فهلول[16] بن کرم[17] بن عمیل[18] بن حذیفه[19] بن مهنال[20] بن قیص[21] بن علیم[22] بن اشموئل[23] بن هارون[24] بن

---

[1] د پښتنو تاریخ د قاضی عطاؤ الله خان مرحوم او نور تاریخونه چه دانظریه ئے نقل کړیده۔ (په معمولی لفظی تصرف سره)

قمرود[۲۵] بن ابي[۲۶] بن صليب[۲۷] بن طلل[۲۸] بن لوئ[۲۹] بن عاميل[۳۰] بن تارج[۳۱] بن ارزند[۳۲] بن مندول[۳۳] بن سلم[۳۴] بن افغانا[۳۵] بن ارميا[۳۶] بن ساول[۳۷] ملقب به طالوت[۱]

پښتو ژبه:۔ دا مؤرخين دا هم وائي چه پښتو ژبه د عبرانۍ اردو لے صورت دے۔ او په دے ژبه کښې به حضرت سليمان ع د آصف او افغانا سره د عامو خلقو او نورو درباريانو په مخکښې د راز خبرے کولے۔ او دا ژبه افغانا ايجاد کړې وه۔ دغه شان دوی دا هم وائي چه يوه ورځ حضور ص اوفرمائيل چه په دوزخ کښې به دوزخيان په پښتو خبرے کوی نو هرکله چه حضرت خالد رض د دے نه خبر شو نو هغه سخت خفه شو او پريشانه شو۔ او د حضور ص مجلس ته ئے تلل راتلل پريښول۔ ولے چه حضور ص ته د خالد رض د خفګان حال معلوم شو نو هغوی حضرت خالد رض ته په پښتو کښې اوفرمائيل چه خالد رض "غشے اولينده راوړه" نو هرکله چه حضرت خالد رض د حضور ص د خلے په پښتو کښې خبرے واوريدلے نو دا فکرئے د زړه نه لرے شو۔[۲]

دغه ليکوال ټول پښتانه قبائيل په پنځو غټو طبقاتو کښې ويشي۔ د قيس عبدالرشيد د درے ځامنو سړبن، غورغشت او بيټن اولاد ته "داصلي افاغنه" وائي۔ باقي دوه طبقې متوزی اوکرلاڼي قبائيل دوسلی افاغنه په نوم يادوی۔ يعنی دوی د قيس اصلی اولاد نه ګڼي ۔البته په بنی اسرائيلو کښې ئے د افغانا په اولاد کښې شامل ګڼي۔

د پښتنو داصل نسل په باب کښې دا اوله نظريه ده چه په مختصرو لفظونو کښې بيان کړے شوه۔ ولے اول د دے نه چه د دے نظرئے په حقله د تاريخي شهادتونو په رڼا کښې بحث اوشي۔ دا ويئل به بے ځايه نه وی۔ چه د دے نظرئے د دے درے نيمو سوو کالو راسے په پښتنو کښې ديوے منلی شوی عقيدے حيثيت اختيار کړے وو۔ اود نن نه څه خلويښت پنځوس کاله اګاهو ټول پښتانه خوا که د افغانستان استوګن وو۔ اوکه د پاکستان، هم په دے نظريه متفق وو۔ اوس هم په پښتون اولس کښې د عمومی کليئے په توګه داخبره مشهوره ده چه پښتانه د خالد رض بابا اولاد دے۔ ولے کوم وخت نه چه ديورپ د عالمانو له خوا د سنسکرت او اوستائي ژبو پلټنه شروع شوه۔ او د دے ژبو ترمينځه عالمانو ته حيرت انګيز مشابهت معلوم شونو په دغه لړکښې ځنے عالمانو د پښتو ژبے څيړنه هم اوکړه۔ او دا ثابته شوه چه

---

[۱] تاريخ خورشيد جهان [۲] تاريخ خورشيد جهان۔

پښتو ژبه هم د آريائي ژبو په کورنۍ کښې شامله ده. نو بنا پر دې د پښتو د اصل نسل مسئلې يو نزاعي حيثيت اختيار کړې دې.

دا نظريه لکه پورته چه بيان شوه - په دوو حصو کښې تقسيميږي. يعنې د بخت نصر د حملې پورې واقعات د اسرائيلي تاريخ سره تعلق لري. او د ظهور اسلام نه پس واقعات د اسلامي تاريخ سره. د اسرائيلي تاريخ سره مربوط واقعاتو د تصديق د پاره زما په خيال کښې بهترين ماخذ تورات دې. هسې هم ددې نظرئې مرستيال د آريائي نظرئې د حاميانو نه دا گيله کوي چه دوي د رگ وېد او اوستا د مندرجاتو نه څو استفاده کوي. ولې د تورات مندرجاتو ته هيڅ توجه نه ورکوي. نو دا به غوره وي چه دا نظريه په يو څو نکتو کښې تقسيم شي. او بيا د هرې نکتې د تاريخي اهميت او صحت تصديق د تورات د مندرجاتو نه اوشي. د بحث د پاره به دا يو څو نکتې کافي وي.

(۱) د بني اسرائيلو د بادشاه په حيثيت د ساؤل (طالوت) تقرري او بيا د بني اسرائيلو د شپيته زره لښکر سره د جالوت مقابلې ته د هغه روانگي.

(۲) د مقابلې په وخت کښې د طالوت د لورې نه د جالوت د قتل د پاره د يو خاص انعام اعلان او د حضرت داؤدؑ هغه خاص انعام گټل.

(۳) د بادشاهۍ په کاروبار کښې د طالوت او حضرت داؤدؑ شرکت او د طالوت لور حضرت داؤدؑ ته واده کيدل.

(۴) د حضرت داؤدؑ په حقله د طالوت بدگماني، د دوي تعلقات خرابيدل او د طالوت د لاسه د حضرت داؤدؑ تښتيدل.

(۵) د بني اسرائيلو سره د طالوت ظالمانه رويه، په خپله رويه د طالوت ندامت او ددې په بدله کښې په رضا صلاح سره خپل سلطنت حضرت داؤدؑ ته ورکول. او خپلې دوه اميدواره بنځې هم د حضرت داؤدؑ په نگرانۍ کښې پريښول. او بيا د خپلو لسو ځامنو سره د کافرانو جنگ ته تلل او په هغه جنگ کښې د طالوت سره د خپلو ځامنو شهيد کيدل.

(۶) برميا او ارميا د طالوت پس مرگي ځامن. د هغه ماشومان د حضرت داؤدؑ په نگرانۍ کښې لوئيدل. او بيا د وزارت عظمى او سپه سالارۍ په اهمو کليدي عهدو د دې ځلمو مقرر کيدل.

(۷) د حضرت سلیمانؑ په زمانه کښې د برخیا ځوی آصف او ارمیا ځوی "افغانا" د وزارت عظمٰی او سپه سالارئ په عهده مقرر کیدل۔

(۸) د افغانا په نګرانئ کښې د بیت المقدس تعمیر۔

(۹) پښتو ژبه۔

(۱۰) د بخت نصر حمله۔ د بنی اسرائیلو انتشار او قید و بند۔ د بابل اسات ددوئ دځینو قبیلو په حجاز کښې استوګنه اختیارول او دځینې قبائیلو په کوهستان کښې پناه اخستل۔

زما په خیال کښې په دے نظریه کښې د اسرائیلی تاریخ سره مربوط دغه لس خبرے دی چه د تورات د مندرجاتو په رڼا کښې ئے جاج اخستل پکار دی۔

ترکومه حده چه د اولے او دویمے خبرے تعلق دے۔ تورات هم ددے تصدیق کوی۔ یعنی دا درست ده چه د بنی اسرائیلو د بادشاه کیدو نه پس دخدائے په حکم او د حضرت سموئیل په هدایت ساؤل د فلستیانو جنګ ته روان شو۔ چونکه د فلستیانو سردار جالوت (جولیت) دیر زیات جسمانی طاقت لرلو۔ نو د بنی اسرائیلو د فوځ نه د هغه مقابلے ته څوک نهٔ وتل۔ له دے کبله ساؤل دا اعلان اوکړو چه د جالوت قاتل ته به خپله لور په نکاح ورکړم۔ او د بادشاهئ په کاروبار کښې به ئے شریک کړم۔ چنانچه حضرت داؤدؑ د جالوت مقابلے ته لاړ۔ هغه ئے اووژلو۔ او خپل ځان ئے ددے انعام مستحق اوګرځولو۔

ولے ددے نه پس چه ددے نظریئ کومے خبرے د طالوت سره تعلق لری۔ د تورات د مندرجاتو نه د هغې مرسته نهٔ کیږی۔ د تورات په مطابق د حضرت داؤدؑ په حقله د طالوت بدګمانی د جالوت د وژلو سره پیدا شوی وه۔ او د هغهٔ سره دا خطره وه چه طالوت به اوس زمانه بادشاهی واخلی۔ د تورات په الفاظو کښې واقعات داسے دی:۔

"څه وخت چه داؤدؑ هغه فلستی (جالوت) اووژلو۔ او بیرته راتلو۔ او هغوی ټول راروان وو۔ نو د اسرائیل د ټولو ښارونو نه د ساول باچا د استقبال د پاره ښځے راووتلے۔ چه د خوشحالئ نه به ئے چغے نعرے وهلے۔ ګڼا به ئے کوله او سندرے به ئے ویلے۔ دغه ښځو به په خپلو سندرو اوګڼا کښې دا وئیل چه ساول خو زرګونه وژل ولے داؤدؑ خو لکونه اووهل۔"

"اوساؤل په دے سخت غصه شو۔ ځکه چه دا خبره په ده ډیره بده اولګیده۔ او وے وئیل چه دے ښځو خو د داؤدؑ د پاره لکونه او زما د پاره زرګو نه یادکړل۔ پس د بادشاهئ نه بغیر هغه بل کوم څیز هغهٔ (داودؑ) ته پاتے دے۔ پس د دے ورځے نه روستو ساؤل په داؤدؑ بدګمانه وو۔ (۱۔ سموئیل باب ۱۸۔ آیت ۶۔ ۹)

دا بدګمانی ورځ په ورځ زیاتیدله۔ ځکه چه حضرت داؤدؑ دخپلو ښو اخلاقو او ذاتی صفاتوله کبله په خلقو کښے ډیر زر مقبول شو۔ نو د ده دا هر دلعزیزی او مقبولیت ساول په خپل زړهٔ کښے دخپل سلطنت د پاره لویه خطره ګڼله۔ دغه وجه وه۔ چه ساول دا اراده اوکړه۔ چه دخپلے لارے نه داؤدؑ په داسے طریقه لرے کړی چه دے په دے بدنام هم نهٔ شی۔ او د داؤدؑ غم هم غوخ شی۔ په دے غرض طالوت داؤدؑ ته دخپلے لور دواده دا شرط مقرر کړو۔ چه داؤدؑ دِ دفلستیانو جنګ ته لاړ شی۔ داؤدؑ دا شرط هم پوره کړو۔ ولے طالوت بیا هم خپله وعده پوره نهٔ کړه۔ او خپله مشره لورئے یو بل سړی ته په نکاح ورکړه۔

د طالوت یوے بلے لور چه میکل نومیده۔ د حضرت داؤدؑ سره مینه لرله۔ او داے غوښتله چه پلارے دِ داؤدؑ ته ورکړی۔ طالوت چه د دے نه خبر شو نو هغه په دے خوشحال شو۔ او دا خیال ئے اوکړو چه دد ے لور په وجه به د داؤدؑ قیصه ختمه کړم۔ ولے دا ځل ئے هم د نکاح د پاره د سلو فلستیانو سرونه شرط مقرر کړو۔ داؤدؑ دا شرط هم پوره کړو۔ او د سلو فلستیانو په ځائے ئے دوه سوه فلستیان اووژل۔ او د هغوی سرونه ئے طالوت ته راوړل۔ دد ے نه پس طالوت هغهٔ ته خپله لور (میکل) وادهٔ کړه۔

ولے د طالوت ویره ورځ په ورځ زیاتیدله۔ اوس هغه په ښکاره د داؤدؑ د وژلو اراده اوکړه۔ ولے د ساول د ځوی یونتن (چه د داؤدؑ) خوږ دوست وو۔ او د میکل په مرسته د مرګ نه څوځو واره بچ شو۔ د سموئیل په کتاب اول کښے هغهٔ ټول اقدامات په تفصیل سره ذکر کړی دی کوم چه د داؤدؑ د مرګ په حقله د طالوت د لوری نه شوی وو۔ د طالوت زړهٔ د داؤدؑ نه هغه وخت صبر شو چه داؤدؑ خپل وطن پریښود۔ او د اسرائیلی علاقے نه او تښتید لو۔ د طالوت د ناکردو نه د حضرت داؤدؑ د تیښتے واقعه د تورات په الفاظو کښے داسے ده:۔

"او داؤدؑ په خپل زړهٔ کښے اووئیل چه اوس زهٔ به خواه مخواه یوه ورځ د ساول

دلاسه اووژلے شم۔ پس زما د یاره ددے نه بله ښه خبره نيشته ۔ چه زهٔ د فلستيانو ملک ته لاړ شم ۔ او هله به ساول زما نه نا امیده شی۔ او بيا به ے د بنی اسرائيلو په سرحداتو کښے نهٔ لټوی۔ او زهٔ به د هغهٔ د لاس نه بچ پاتے شم۔

پس داؤدؑ پاسيدو او د ځان سره ے شپږ سوه ځوانان واخستل ۔ او د "جات" بادشاه "اکيس" ته چه د معوک ځوئے ولاړ او د داؤدؑ او د هغهٔ ملګری په جات کښے سره د خپلو خپلو ښځو داکيس باچا سره استوګن شول ۔ او د داؤدؑ سره هم خپلے دواړه ښځے يعنی يزرعيلی "اخينوعم" او د نابال ښځه کرملی "ابيجيل" هلته کښ وے.

"او چه ساؤل خبر شو چه داؤدؑ "جات" ته اوتښتيدو نو بيا هغهٔ هيچرے د دهٔ تلاش او نهٔ کړو۔ (کتاب ا۔ سموئيل باب ۲۷ ۔آيت ا۔۴) ۔

(۵) دا خبره هم بيخی غلطه ده چه طالوت په خپلو کارونو پښيمانه شو۔ او په رضا صلاح ے خپل سلطنت او خپلے دوه اميدواره ښځے داؤدؑ ته اوسپارلے۔ د تورات نه دا صفا معلوميږی چه د طالوت د مرګ نه پس د طالوت په ځائے د هغهٔ يو ځوئے حکمران شو۔ او حضرت داؤدؑ (ووهٔ کاله صرف يواځے د يوے قبيلے (يهودا) باچا وو۔

دغه رنګ دا هم غلطه ده چه طالوت د خپلو ګناهونو د کفارے ورکولو د پاره د کافرانو سره جنګ ته آماده شوے وو۔ نه د هغهٔ لس ځامن په دے جنګ کښے مړهٔ شوی وو۔ ددے ليکوالو د ليکو نو نه ساول يو داسے قومی هيرو معلوميږی چه د هغهٔ هرکار او هر قدم به د خپل قام د بهترئ په لار کښے اوچتيدو۔ په دے ضمن کښے چه د طالوت په حقله په خورشيد جهان او دغه قسم نورو تاريخونو کښے کوم واقعات بيان شوی دی ۔ د تورات مطابق هغه بيخی غلط دی۔ په خلاف ددے د تورات د مندرجاتو نه چه کوم واقعات معلوميږی ۔ د هغ نه دا نتيجه اخستے شی چه د ساؤل په دل او دماغ دا خوف غالب شوے وو ۔ چه داؤد به زما نه سلطنت واخلی ۔ نو هغهٔ به خپل ټول طاقت د داؤدؑ په ګرفتارولو کښے صرف کولو ۔ ددے لازمی نتيجه دا وه چه په بنی اسرائيلو کښے هم پريشانی او اړے ګړے وو۔ د ساول خپل قام د هغهٔ نه په دے خبره ناراض وو۔ د خپل قام او طالوت ترمينځه د اختلافاتو نتيجه دا شوه چه کوم کاونډی قامونه د دوی په پولو پراتهٔ وو ۔ هغوی به په اسرائيلی سرحدونو حملے کولے۔ چونکه د ساول سره د خپل قام اخلاص او همدردی نهٔ وه۔ نو هغه به ددے حملو موثر مدافعت نهٔ شو کولے ۔ د نا اميدئ او مايوسئ په دے حالاتو کښے د ساؤل

نه بند پیوند، خطا شوے وو - او په چل نهٔ پوهیدو چه داورا نه ماشوره څه رنګ نسه کړی - په دغه زمانه کښے سموئیل نبی هم وفات شوے وو - د پریشانئ او مایوسئ په دے حالاتو کښے فلستیانو په اسرائیلی سلطنت حمله اوکړه - اوساول دهغوی مقابلے ته روان شو - نور واقعات د تورات په الفاظو کښے داسے دی:-

« او په هغه ورځو کښے داسے اوشول - چه فلستیانو خپل فوځونه جمع کړل چه دا اسرائیلیانو سره جنګ اوکړی ؛

او فلستیا ن جمع شول او د شونیم په مکان کے ډیره اونیوله - اوساؤل هم ټول بنی اسرائیل جمع کړل - اودوی په جلبوعه کښے خیمے اولګولے - اوڅه وخت چه ساول د فلستیانو لښکر اولیدهٔ - نو ویرے واخستهٔ - او دهغهٔ په درزړهٔ شو ؟

(۱ - سموئل باب ۲۸ - آیت ۱ - ۵ )

د دے نه پس ساول په بدله جامه کښے یوے فالګرے ښځے ته لاړ او دهغ په ذریعه کے د سموئیل نبی نه د خپل مستقبل په حقله پښتنه اوکړه -

« بیا هغ ښځے دهٔ (ساؤل) ته اوویئیل څوک ستا د پاره پورته راوغوارم ؟ - هغهٔ ورته اووے سموئیل زما د پاره را اوغواړه چه کوم وخت هغ ښځے سموئل او لید و نو چغه کے کړه او ساول ته اووے تا زما سره ټګی اوکړه - ځکه چه ته خو په خپله ساؤل کے - بیا بادشاه هغ ته اوویئیل ته مهٔ ویریږه - ته څوک وینے ؟ هغ جواب ورکړو - چه یو بوډا د زمکے نه پورته راروان دے - بیا هغهٔ تپوس اوکړو - چه شکل کے څه رنګ دے ؟ هغ ورله اوویئیل چه بوډا سړے دے جُبه کے اغوستے ده - دغه وخت ساؤل پوه شو چه هم دغه سموئیل دے - (نو) ساؤل پړمخ په زمکه په سجده پریوت - سموئیل ساؤل ته اوویئیل - تا زهٔ ولے بے آرامه کړم - اوپورته دِ رااوبللم - ساول ورته اووے چه زهٔ ډیر پریشان یمٔ - ځکه چه فلستیان زما جنګ ته راغلی دی - او خدائے پاک زما نه جدا شوے دے - هغه نهٔ خو ما ته د نبیانو په ذریعه او نهٔ په خوب کښے څه جواب راکوی - نو ته مے ځکه رااوبللے چه ما ته اووائے چه زهٔ څه اوکړم ؟

« سموئیل ورته اووے پس ته زما نه ولے پښتنه کوے - حال دا دے چه خدائے پاک

---

ے په تاریخ خورشید جهان کښے دا ښځه د یوے عابدے زاهدے ښځے په الفاظو یاده شوے ده -

د تا نه جدا شوے دے۔ او ستا دشمن شوے دے۔ او خدائے پاک چه څه رنګ زما په معرفت وئیلی وو۔ هم هغه شان ئے کړی دی - خدائے پاک ستا دلاس نه سلطنت شلولے او ستا ګوانډی داودؑ ته ئے ورکړے دے۔ ځکه چه تا د خدائے پاک حکم او نهٔ منلو - او د عمالیقو سره دِ سختی او نهٔ کړه۔ له دے کبله خدائے پاک د تا سره دا سلوک اوکړو۔ ددے نه سوا خدائے پاک به د تا سره اسرائیلیان هم فلستیانو ته حواله کړی۔ او سبا له به ته او ستا ځامن زما سره یو ځائے شئ۔ او خدائے پاک به اسرائیلی لښکر هم د فلستیانو په لاس کښے ورکړی۔ پس ساول سمدستی په زمکه اوږد اوږد او غزیدلو۔ او د سموئیل په خبرو ډیر او ویریدلو او په هغه وخت کښے په دهٔ کښے هیڅ طاقت نهٔ وو۔ ځکه چه ټوله ورځ او ټوله شپه ئے ډوډی نهٔ وه خوړلې۔"
(۱- سموئیل باب ۲۸ -آیت ۸ تا ۳۰)

ددے نه پس د ساول او فلستیانو ترمینځ جنګ اوشو۔

"او فلستیان د اسرائیل سره اوجنګیدل - او اسرائیلی ځوانان د فلستیانو دمخ نه اوتښتیدل - او د جلبوع په غرونو کښے اووژلے شول۔ او فلستیانو د ساؤل ځامن ښه په مخه واخستل۔ او فلستیانو د ساؤل ځامن یونتن، ابینداب، او ملکیشوع اووژل - او دا جنګ په ساؤل ډیر ګران شو۔ او تیراندازو هغه راګیر کړو۔ او هغه د تیراندازو له کبله په ګرانه کشاله کښے ګیر شوے وو۔ بیا ساؤل خپل وسله بردار خادم ته اووے چه خپله توره راوباسه - او ما په هغې او څیره۔ هسے نه چه دا نا سنته (فلستیان) را اورسی او څیرے او بے عزته ئے کړی۔ ولے د هغهٔ وسله بردار دے کار ته غاړه کښے نښوه۔ ځکه چه هغهٔ ډیر ویریدلے وو۔ نو ساول خپله توره راواخسته - او په هغې باندے راپریو تلو۔ چه د هغهٔ وسله بردار اولیدل - چه ساول مړ شو نو هغه هم په خپله راپریوتلو۔ او د هغهٔ سره مړ شو۔ پس ساؤل، د هغهٔ درے واړه ځامن او د هغه وسله بردار او هغه ټول خلق په هغه ورځ یو ځائے مړهٔ شول " (۱- سموئیل باب ۳۱- آیت ۱ - ٦)

پس ساؤل د خپلے ګناه له کبله کومه چه هغهٔ د خدائے په حضور کښے کړی وه۔ مړ شو - ځکه چه هغه د خدائے حکم او نهٔ منلو - او دے د پاره هم چه هغهٔ (ساؤل) د هغه چا نه مشوره واخسته چه پیرے ئے اشنا وو۔ چه د هغهٔ په ذریعه خپل قسمت

معلوم کړی۔ او د خدائے نه ئے تپوس او نه کړو۔ پس خدائے پاک ساؤل هلاک کړو۔ او سلطنت ئے لیسی ځوی داؤد ته منتقل کړو۔"
(۱۔ تواریخ باب ۔۱۱۔ آیت ۱۳۔۱۴)

دد ے حوالو نه زما دا خبره څرګند ول غرض نه دے چه آیا ساؤل شهید شوے دے۔ څه رنګ چه دے لیکوالو وئیلی دی۔ او که هغه ځان وژنه کړی ده۔ بلکه مدعاے دا ده چه دد ے لیکوالو او تورات په بیان کښې ډیر څرګند اختلاف دے۔ او په دے صورت کښې د ساؤل په حقله د تورات بیان زیات مستند دے. دد ے نه دا هم صفا څرګنده شوه۔ چه نه څو ساول په رضا صلاح خپل سلطنت داؤد ته ورکښیلے وو۔ او نه ئے خپلے دوه امیدواره ښځے د داؤد په نګرانئ کښې ورکړے وے۔ دا خبره هم معلومه شوه۔ چه د ساؤل د مرګ په وخت کښې داؤد د اکیس د باچاسره یو سیاسی پناه ګزین او مفرور په حیثیت استوګن وو۔ او هرکله چه هغه د ساول د مرګ نه خبر شو۔ نو د خدائے پاک په حکم د یهودا قبیلے علاقے ته راغے۔ او په دے علاقه کښې په حبرون نوے ښار کښې دیره شو۔ دلته د یهودا قبیلے هغه خپل باچا او ټاکلو۔ په دے دستور د ساؤل د مرګ نه پس اووه نیم کاله پورے داؤد یواځے د یو "یهودا" قبیلے باچا وو۔ (۲۔ سموئیل باب ۲۔ آیت ۱۰۔ ۴)

د ساؤل د مرګ نه پس د هغه ځوے "اشبوست" د یهودا قبیلے نه علاوه د نورو اسرائیلی قبائیلو شو۔ دا سړے د ساول د سر لښکر چه "ابنیر" نومیده۔ په مدد باچا شوے وو۔ د تورات په الفاظو کښې واقعات داسے وو:۔
"لیکن د نیر ځوی "ابنیر" چه د ساول د لښکر سردار وو۔ د ساؤل ځوی اشبوست د ځان سره کړو۔ او محنائم ته ئے راورسولو۔ او هغه ئے د جلباد آشریانو یزرعیل، افرایئم، بن یمین او ټولو اسرائیلیانو باچا کړو۔ او د ساؤل د ځوی اشبوست عمر د غه وخت دوه څلویښت کاله وو۔ چه هغه د بنی اسرائیلو باچا شو۔ او هغه دوه کاله بادشاهی اوکړه۔ لیکن د یهودا کورنئ د داؤد پیروی اوکړه۔ او داؤد په جبرون کښې په بنی یهودا باندے اووه کاله او شپږ میاشتے حکمران وو۔"

---

ل (سموئیل باب ۲۔ آیت ۸۔۱۱)

(۱) الغرض د ساؤل په کورنۍ او د داؤد ؑ په کورنۍ کښې تر ډیرے مودے جنګ وو۔ او داؤد ؑ ورځ په ورځ مضبوتیدلو۔ او د ساول تهبر به کمزورے کیدو ؎۔
د پورته حوالو نه موبز ته دا خبرے معلومے شوے۔

(۱) چه ساؤل په خپل ژوند کښے په رضا صلاح سره خپل سلطنت داؤد ؑ ته نۀ دے ورسپارلے۔

(۲) په ساؤل پسے د هغۀ ځوئ اشبوست باچا شو۔ او هغۀ د یهودا قبیلے نه علاوه د نورو اسرائیلی قبائیلو باچا وو۔

(۳) د ساؤل غلورقامن وو۔ چه درے د هغۀ سره په جنګ کښے وژلے شوی وو۔ او دا یو د هغۀ نه پس د اسرائیلیانو بادشاه شو۔

(۴) د ساؤل د مرګ په وخت کښے حضرت داؤد ؑ د یو سیاسی پناه ګزین په حیثیت د اسرائیلی علاقے نه بهر اوسیدلو۔ او د دے نه پس هغۀ صرف د یهودا قبیلے حکمران شو۔

(۵) د حضرت داؤد ؑ او ساؤل د کورنۍ ترمینځه او وۀ نیم کاله پورے جنګونه روان وو۔ او د دے جنګونو په نتیجه کښے د ساول کورنۍ ډیره کمزوری شوه۔ او ځپیدله۔

اوس به د ساؤل د هغه دوۀ بڅو قصے ته پام اوکړو۔ کوم چه د دے لیکوالو د بیان مطابق ساول د جنګ نه وړاندے د حضرت داؤد ؑ په نګرانۍ کښے ورکړے وے۔ د تورات د پورته ذکر شو و حوالو په رڼا کښے دا خبره بیخی غلطه ثابتیږی۔ د دے حوالو نه موبز ته دا معلومه شوه چه د ساؤل په ژوند کښے حضرت داؤد ؑ د هغۀ د لاسه په یو غیر حکومت کښے په پناه ګرینۍ اختیارولو مجبور شوے وو۔ او د ساؤل د مرګ نه پس هم د ساول د کورنۍ او حضرت داؤد ؑ د کورنۍ ترمینځه تعلقات ډیر خراب وو۔ او د دوۍ ترمینځه اووۀ نیم کاله جنګونه جاری وو۔ او د دے نه پس حضرت داؤد ؑ د ټولو اسرائیلی قبائیلو باچا شوے دے۔ او د ساول کورنۍ هم دے له مجبوری نه خپل باچا منلے دے نو بیا په دے صورت کښے خو هډو د دے خبرے نه سوال پیدا کیږی او نۀ

---

؎ (۲۔ سموئیل باب ۳۔ آیت ۱)۔

امکان چه کوندے ساؤل به د حضرت داؤدؑ په نگرانئ کښې هغهٔ نه دوه ښځې ورسپارلی دی۔

(۲) برخیا او ارمیا (د ساؤل پس مرګی ځامن او دهغوی عهده۔)

د دے لیکوالو مطابق دا دواړه سړی د ساؤل د هغه دوو ښځو ځامن دی. چه پورته موږ ذکراو تلاش اوکړو۔او د ساول او حضرت داؤدؑ په واقعاتو کښې مو د دوی په حقله هیڅ او نهٔ موندل۔ نو هرکله چه د ساؤل او حضرت داؤدؑ په واقعاتو کښې مو د دوی په حقله هیڅ او نهٔ موندل۔ نو هرکله چه د ساول د دے مبینه ښځو حضرت داودؑ ته د حواله کولو واقعه بیخی بے بنیاده ده نو د ځامنو خوږے هم هیڅ سوال نهٔ پیداکیږی۔ دا خبره هم د فکر وړ ده چه د ساؤل د مرګ نه اووهٔ نیم کاله پس حضرت داؤدؑ د ټولو اسرائیلو قبائیلو باچا شوے دے۔او د دهٔ حکومت په ټولو اسرائیلیانو درے دیرش نیم کاله قائم وو۔که چرے په واقعاتو کښې هم ارمیا او برخیا د ساؤل پس مرګی ځامن وے۔ بیا هم دا خبره د عقل او انقل له مخه څه موزونیت نهٔ لری۔ چه دا دواړه ځلمی به د حضرت داؤدؑ په حکومت کښې د وزارت عظمیٰ او سپه سالاری په کلیدی اهمو عهدو باندے مقرر شوی وی۔ ځکه چه د خپل اهمیت له مخه د دے دواړو عهدو د پاره همیشه زاړهٔ او تجربه کار افراد پکار دی۔ لیکن دارمیا او برخیا عمرونه په دغه وخت ایله پنځویشت دیرش کاله وو۔ د حضرت داؤدؑ په کردارانو کښې دوه کسه سړی په دے نامو په نظر راځی۔ ولے دا دواړه سړی د دے لیکوالو هغه مخصوص برخیا او ارمیا نهٔ دی۔ د چا سره چه د بنی افغان افسانه وابسته ده۔ بلکه دا بیخی نور دی۔او تاریخ کے دا سے دے۔ اول به د برخیا ذکر اوکړو۔

برخیا:۔ دا نامه په تورات کښې برکیا ده۔ دا سړے د بن یامین قبیلے نه بلکه د لاوی قبیلے یو فرد دے۔ په بنی اسرائیلو کښې د لاوی قبیلے حیثیت د مذهبی پیشوایانو وو۔ د مذهبی قربانیانو اداکول او د صندوق عهد په حقله ټول مذهبی فرائض په ځائے راوړل۔ د دے قبیلے په ذمه کے خپل خپل کارونه اولګول۔ چنانچه په دغه لړ کښې برخیا (برکیا) او د هغهٔ ځوی آصف په ذمه هم مخصوص فرائض وو۔چه د تورات په الفاظو کښې کے ذکر دا سے شوے دے۔

او داؤدؑ د داؤدؑ د داود په ښار کښې د خپل ځان د پاره محلات جوړ کړل۔او

د خدائ د صندوق د پاره ئ هم يو ځائ تيار کړو - او د هغ د پاره ئ خيمه اودروله - بيا داؤد اووئيل چه دلاويانو نه بغير بل هيڅ يو ته د خدائ دا صندوق اوچتول نۀ دى پكار ځكه چه خدائ پاک هم دوى غوره كړى دى - چه د خدائ دا صندوق دِ اوچتوى - او هميشه دِ د دے خدمت كوى۔ (ا - تواريخ - باب ۱۵ - آيت ۱ — ۲) -

« او داؤد د لاوى قبيلے مشرانو ته او فرمائيل چه دوى دِ د خپلو رونو نه سندرغاړى مقرر كړى - چه هغوى به د موسيقۍ آلات يعنى ستار، سرينده او چانجونه غږوى - او په اوچت آواز به په خوشحالۍ خوشحالۍ سندرے وائي۔ «پس لاويانو » هيمان بن يوايل » مقرر كړو - او د هغۀ د رونو نه ئ آصف بن بركيا هم - او د هغوى د ورونو بنى موارى نه ئ «ايتان بن قوسيا» ور سره، پس سندرغارى هيمان آصف او ايتان مقرر شول - چه دوى به د زيړو چانجونه (ركټورى) غږوى - او «القانه او بركيا» د صندوق څوكيداران مقرر وو - (ا - تواريخ - باب - ۱۵ - آيت ۱۶ - ۱۷ - ۱۸ - ۲۴)

د موسيقۍ د يو ماهر او د سندرغاړى په حيثيت د آصف بن بركيا ذكر په نورو ډيرو ځايونو كښے موجود دے - د تفصيل خواهشمند دِ (ا - تواريخ باب - ۱۶) اولولى -

د برخيا (بركيا) په باب كښے د تورات د شهادت نه دا معلومه شوه چه هغه د «لاوى» قبيلے يو فرد او د خپلے كورنۍ مشر وو - او د داؤد[ع] په عهد كښے پوخ زوړ سړے وو - او دا نۀ چه د دے ليكوالو د وينا مطابق د ساول د نطفے نه د هغۀ پس مرګى ځوى او د داود په نګرانۍ او تربيت كښے لوئ شوے او بيا هغۀ خپل وزير مقرر كړے وو - كه چرے واقعات داسے وے لكه څه رنګ چه دے ليكوالو ليكلى دى نو يقيناً به د داؤد[ع] په حالاتو كښے تورات د دے د ذكر نه خالى نۀ وو -

د تورات د شهادت نه دا هم معلومه شوه چه آصف هم په د غه وخت كښے د موسيقۍ د يو ماهر په حيثيت د «صندوق عهد» په خدمت د داؤد[ع] د لورى نه مقرر وو - او د دے ليكوالو دا وينا صحيح بنياد نۀ لرى - چه آصف بن برخيا د پلار د مرګ نه پس د سليمان[ع] په عهد كښے د هغۀ وزيراعظم شو۔

د سلیمان؏ په عهد کښې تورات د آصف د ذکر نه بالکل خالی دے۔ د دے وجه یا خو دا ده چه دده په وخت کښې به آصف مړ وی او یا به هم په هغه زوړ خدمت ماموروی۔ د تورات نه دا هم نه معلومیږی۔ چه د آصف اولاد لږ وو۔ نو ځکه دده اولاد هم د افغانا په اولاد کښې ورګډ شو۔

د ,, افغانا ،، او ,, بنی افغان ،، په نامه څو هڅو په ټول تورات کښې د چا څه ذکر نیشته۔ البته د آصف اولاد د هغه اسیرانو په لړ کښې هم ذکر شوے دے۔ کوم چه د بخت نصر د قید نه پس بیرته د خپلې خپلې کورنئ په نامه یروشلم او یهودا ته راغلی دی۔ دد ے اسیرانو د مشرانو نا ے او د هغوی د بیل بیل ټبر د نارینه افرادو شمار د عذرا بنی په کتاب کښې په دویم باب کښې په تفصیل سره موجود دے۔ ددے باب په آیت (۴۱) کښې د بنی آصف ذکر داسے شوے دے۔" او د سندرغاړو نه د بنی آصف یوسل او اته ویشت سړی ۔" د عذرا بنی د کتاب په دریم باب په لسم آیت کښې د بنی آصف ذکر بیا هغه وخت شوے دے چه د اسیرئ نه پس په یروشلم کښې د هیکل مقدس په دوباره تعمیر لاس پورے شو۔ غرض د تورات په شها دت د برخیا او د هغهٔ د ځوی په مقله دا معلومه شوه چه په دے نظریه کښې د دے دواړو کسانو سره چه کومے خبرے منسوب دی هغه ټے بنیاده دی۔

ارمیا :- څه رنګ چه د برخیا سره منسوب واقعات په تورات کښې نشته۔ دغه شان د ارمیا په نامه نه څو څوک د ساول په ځامنو کښې یا د هغوی په کورنئ کښې موجود دے۔ او نهٔ د حضرت داؤد؏ د اهلکارو په فهرست کښې د ارمیا نامه شته۔ البته په کومو ورځو کښې چه د ساؤل د کورنئ او د داؤد د کورنئ ترمینځه مخالفت وو۔ او بنی اسرائیل دوه ډلے وو۔ د بنی یهودا باچا داؤد؏ او د نورو اسرائیلیانو بادشاه د ساؤل ځوے وو۔ په دے ورځو کښې به وقتاً فوقتاً د بنی اسرائیلو ځینے سرداران او مشران سره د خپلو خپلو ځوانانو د ساؤل د کورنئ نه شلیدل۔ او داؤد ته به ورتلل۔ او د هغهٔ ډله به ئې مضبوطوله۔ د داسے کسانو شمار او نا ے په تفصیل سره په کتاب اول تواریخ کښې موجود دی۔ په دے خلقو کښې دوه تنه د یرمیا (ارمیا) په نامه هم ذکر دی۔ چه یو د بن یامینی قبیلے او بل د ,, بنی جد ،، قبیلے وو۔ دا دواړه کسان د خپل

شجاعت له کبله مشهور وو - او دوی هم د حضرت داؤدؑ ډله نیولی وه- او د
دے نه دا صفا معلومیږی چه دارمیا په حقله افسانه هم محض افسانه ده -
په کتاب اول تواریخ باب ۲۷ کښې د (۱ — نه تر ۳۴) پورے آیتونو کښې د
حضرت داؤدؑ دا هلکارانو او سردارانو فهرست موجود دے - دا فهرست د
"ارمیا" د نامے نه خالی دے - د تورات په شهادت د حضرت داؤدؑ د فوځونو
سالار "یواب" نومیدو -

اوس به زهٔ د تورات یوه بله حواله اولیکم چه د هغ نه به د برخیا او ارمیا
په حقله خبره نوره هم ښه صفا شی :-

"بیا داؤدؑ اووئیل آیا د ساؤل په کورنئ کښې څوک پاتے دے؟ چه په هغه
باندے زهٔ د "یونتن" په خاطر مهربانی اوکړم؟ او د ساؤل د کورنئ یو خادم
د "ضیبا" په نامه وو- هغهٔ د داؤدؑ په خدمت کښې پیش کړے شو- بادشاه
د هغهٔ نه پوښتنه اوکړه- چه (ته) ضیبا ئے؟ هغهٔ اووئیل اوٌ ستا بنده هم
هغه دے- بیا بادشاه اووئیل چه آیا د ساول په کورنئ کښې هیڅوک نهٔ دے
پاتے شوے؟- چه په هغهٔ باندے زهٔ د خدائے په شان مهربانی اوکړم- ضیبا
هغهٔ ته اووئیل چه د یونتن یو ځوئے پاتے دے- چه هغه ګوډ دے- بیابادشاه
د هغهٔ نه پوښتنه اوکړه چه هغه چرته دے؟ ضیبا بادشاه ته جواب ورکړو
ګوره هغه په لوُدبار کښې د "مکیر بن عمی ایل" په کور کښې دے- پس داؤد
بادشاه سړی واستول - او د لوُدبار نه ئے د مکیر بن عمی ایل د کور نه هغه
راوبللو- او د ساؤل د ځوی یونتن ځوی "مفیبوست" داؤد ته حاضر شو-
او هغهٔ د داؤد په مخکښې پرمخ پریوت - بیا داؤد اووئیل مفیبوست! هغهٔ جواب
ورکړو- ستا بنده حاضر دے- داؤد هغهٔ ته اووئیل ویریږه مه ځکه چه زهٔ به
ستا د پلار "یونتن" په خاطر ضرور په تا مهربانی اوکړم- او ستا د پلار ساؤل
زمکه به تا ته ټوله درکړم - او ته همیشه زما په دسترخوان خوره- بیا هغهٔ
سجده اوکړه- او وے وئیل ستا بنده دے څه څیز؟ چه ته زما غوندے مړ
سپی ته په مهربانئ اوګورے - بیا بادشاه د ساؤل نوکر ضیبا راوبللو-او
ورته ئے اووے چه ما هغه هرڅه چه د ساول او د هغهٔ د کورنئ وو- هغه مے
ستا د مالک ځوی مفیبوست ته اوبخښل - پس ته (ضیبا) په خپلو ځامنو او

نوکرانو د هغهٔ دلوری نه زمکه کړه. چه ستا د ناټک دځوی د پاره دودۍ موجوده وی. لیکن مفیبوست چه ستا د ناټک ځوئے دے - هغه به همیشه زما په دستر خوان خوری. او د ضیبا پنځلس ځامن او شل نوکران وو. بیا ضیبا بادشاه ته اوویل چه څه رنګ زما مالک بادشاه خپل خادم ته حکم کړے دے. ستا خادم به هم هغه شان کوی لیکن د مفیبوست په حقله بادشاه اووے چه څه رنګ زما مالک بادشاه خپل خادم ته حکم کړے دے. ستا خادم به هم هغه شان کوی. لیکن د مفیبوست په حقله بادشاه اووے چه هغه به زما په دسترخوان داسے خوری لکه چه هم د شهزادګانو نه یو شهزاده دے. او د مفیبوست یو وړکوټے ورور هم وو چه نامه ئے میکاه وه. او د ضیبا په کور کښے چه څومره خلق وو. هغه ټول د مفیبوست نوکران وو. (د دے نه پس) مفیبوست په یروشلم کښے استوګنه اختیار کړه. ځکه چه هغه به همیشه د بادشاه په دسترخوان دوډۍ خوړله. او هغه په دواړو پښوګوډ[1] وو (۲- سموئیل باب ۹- آیت ۱-۱۳)

د دے شهادت نه موږ ته دا خبرے معلوے شوے چه:-

(۱) دغه وخت د ساؤل په کورنۍ کښے هیڅوک نهٔ وو پاتے. دا کورنۍ داسے برباده او تار په تار شوے وه چه نه خو عامو خلقو ته او نهٔ د داؤد امیرانو درباریانو ته د دے کورنۍ دافرادو په حقله څه معلومات حاصل وو.

(۲) د یونتن ګوډ شل ځوی مفیبوست هم ډکمنامۍ په حالت کښے دیروشلم نه لرے په پټه ژوند تیرولو.

(۳) د ساؤل او دهغهٔ د کورنۍ مال واموال هرڅه داؤد ضبط کړی وو.

دا خبره د فکر وړ ده که چرے د دے لیکوالو د وینا مطابق برخیا او ارمیاد ساؤل پس مرګی ځامن د حضرت داؤد[2] سره موجود او د هغهٔ په نګرانۍ کښے لوئے شوے او بیا د وزارت او سپه سالارۍ په اهمو عهدو باندے قائم وے.

---

[1] د مفیبوست ډګوډ والی وجه داوه چه کوم وخت حضرت داؤد د ساؤل په کورنۍ غلبه بیا موندہ. نو دغه وخت مفیبوست لا وړکوټے وو. او خپلے دائی د ویرے او پریشانۍ په حالت کښے زغلولو. په منډه کښے دائی رااولویده. او مفیبوست هم راګذار شو. او دواړه پښے ئے ماتے شوے.

نو بیا د ساؤل دکورنۍ دافرادو په مقله حضرت داؤدؑ ته د تپوس کولو څه ضرورت وو؟ اوکه چرے دااووتیلے شي - چه ددے پوښتنې نه د داودمطلب خاص د یونتن تن اولاد وو - نو بیا د «ساول دکورنۍ» وئیلو نه څه مراد کیدے شي؟ دا ىسے ځ ولے نهٔ وئیل چه آیا د یونتن په اولاد کښے څوک نهٔ دے پاتے چه د یونتن په خاطر په هغهٔ مهربانی اوکړم - دے ته هم فکر کول پکار دی چه د برخیا او ارمیا په موجودګۍ کښے به حضرت داؤد د ساول د کورنۍ نه داسے بے خبره ولے وو؟ -

د ساول د لمو ځامنو قصه هم غلطه ده - د تورات د شهادت مطابق د ساؤل څلور ځامن وو - چه درے تنه ریونتن ، ملکیشوع ، ابیند اب ) د ساؤل سره یو ځائے په جنګ کښے مړی شوی وو - او یو ځوئے اشبوست[۱] د ساول نه پس د اسرائیلو باچا شوے وو -

حضرت داؤدؑ څلویښت کاله باچا وو - په دے څلویښتو کالو کښے هغهٔ اووهٔ نیم کاله یواځے د یو قبیلے «یهودا» حکمران وو - او په «حبرون» کښے به اوسید و - او دوه دیرش نیم کاله د ټولو اسرائیلیانو بادشاه وو - او په یروشلم کښے ئے استوګنه کوله -

حضرت سلیمانؑ :- د حضرت داؤدؑ د وفات نه پس د هغهٔ ځوی حضرت سلیمانؑ د بنی اسرائیلو بادشاه شو - ددهٔ زمانه د بنی اسرائیلو د عروج او ترقۍ زمانه وه - ددهٔ په زمانه کښے هیکل مقدس تعمیر شو - د حضرت سلیمانؑ ټول حالات په تورات کتاب اول سلاطین کښے په تفصیل سره موجود دی - ولے د دے تفصیلاتو نه بیخی چرته دا نهٔ معلومیږی چه «آصف بن برخیا» د حضرت سلیمانؑ وزیر اعظم او «افغنه بن ارمیا» ددهٔ سپه سالار وو - او یاد بیت المقدس تعمیر د افغنا په نګرانۍ کښے شوے وو - نهٔ د افغنه په نامه او نهٔ په یو داسے بله نامه چه په بعیدو احتمالاتو به ګوندے د هغې مطابقت د افغنه سره اوشي - څوک سړے د سلیمانؑ په سردارانو او اهلکارو کښے موجود ښکاری - د تورات په دوئم کتاب سلاطین کښے د حضرت سلیمانؑ د ټولو سردارانو او کاردارانو نامے او د

---

[۱] ددے اشبوست نامہ د ساؤل د نسب نامے په لړ کښے اشبعل لیک ده - او په دے اختلاف پوهه نه شوم -

هغوی فرائض په تفصیل سره ذکر دی۔ خواهشمند ځ هورے کتلے شي۔ ولے په دے فهرست کښے چرته هم د افغنه، یا دغه شان ته څه بله نامه په نظر نهٔ راځي - نو په دے بنا د افغنه په نوم چه څه وټلے شوی دی۔ هغه هم هیڅ ثبوت نهٔ لری۔

۸:- د افغنه په نګرانۍ کښے د بیت المقدس تعمیر :- د یو دا سے بے بنیاده خبره ده چه په هیڅ دستور سره نهٔ څوری۔ د بیت المقدس د تجویز، خاکے، د تعمیر د سامان وغیره په حقله د لویو لویو تفصیلاتو نه واخلې تر ورو ورو جزئیاتو پورے د هر څه وضاحت په تورات کښے موجود دے۔ د دے مکان په تعمیر کښے چه څومره کسان لګیا وو۔ او په څومره موده سرته رسیدلے دے۔ د سرو زرو، سپینو زرو، د زیړو او او سپنو او اود عمارتي لرګو غرض د هر څه تفصیل بیان شوے دے۔ ولے د یوے خبرے نه هم دا نهٔ معلومیږی چه د دے میر عمارت "افغنه بن ارمیا" وو۔ لوستونکی که تصدیق کول غواړی۔ نو د تورات اول کتاب سلاطین شپږم باب د اوګوری۔ د دے باب آخری دوه آیتونه (۳۷-۳۸) دا سے دی (د سلیمان د سلطنت) په څلورم کال د "زیو" په میاشت کښے د خدائے پاک د کور بنیاد کیښنو دلے شو۔ او په یوولسم کال د "بول" په میاشت کښے د خدائے پاک د کور بنیاد کیښنو دلے شو۔ او په یوولسم کال د "بول" په میاشت کښے هغه کور د خپلو ټولو حصو سره د خپلے نقشے مطابق تیار شو۔ او دغه شان د دے په تعمیر کښے اووهٔ کاله او لګیدل۔

د دے مکان په تعمیر کښے یو نک درے پنځوس زره او شپږ سوه مزدوران لګیا وو۔ په دے تعداد کښے به اتیا زره کسانو په غرونو کښے کاڼي ایستل۔ او په اَرو به ئے پریکول۔ او جوړول۔ او یا زره کسانو به دغه کاڼي د غرونو نه ښکته راوړل، او درے زره شپږ سوه کسانو به د دے خلقو نګرانی کوله۔

هر کله چه د دے مکان په حقله ټول تفصیلات د یوے نه واخلې تر دیوته پورے موجود دی۔ نو که چرے دا تعمیر د افغنا بن ارمیا په نګرانۍ کښے شوے وے۔ نو د هغ ذکر به خواه مخواه شوے وو۔ لکه چه په دے هیکل کښے د پیتلو او مرصّع کارۍ کار د هیرام نومے یو فنکار په لاس شوے دے۔ نو د هغهٔ ذکر موجود دے۔ دا سے د مصور لوسیدنې[له]

---

له (۱- سلاطین باب ۷- آیت ۱۳-۱۴)

وو ــ دے نه علاوه دحضرت سلیمانؑ په ټول عهد سلطنت کښے دافغنا په نوم څوک نیشته ـ نو هرکله چه دافغنا خپل وجود ثابت نهٔ دے ـ نو دهغهٔ په نګرانئ کښے د بیت المقدس دتعمیرهڼو سوال نهٔ پیدا کیږی ـ دا خبرهم دفکر وړ ده چه اګرچه په مشرقی روایاتو کښے آصف بن برخیا دحضرت سلیمانؑ د وزیر اعظم په ډول شهرت موندلے دے ـ اودا نوم دیو ډیر دانا او دانشمند په مفهوم کښے استعمالیږی ـ لیکن ترڅو مره چه داسرائیلی روایاتو تعلق دے ـ د آصف بن برخیا دوزارت واقعه څه بنیاد لری ـ

۹:ـ پښتو ژبه :ــ دپښتو ژبے په حقله چه دے لیکوالو څه لیکلی دی ـ هغه ډیر قابل افسوس دی ـ او ددے خبرے غمازی کوی ـ چه دمغلو په وخت کښے به پښتو او پښتنو ته په کوم نظرکتلے شول ـ ددے په حقله به دومره ویل کافی وی چه که چرے دا نباغلی لیکوال په پښتو ژبه پوهیدلے او پښتو دوی نهٔ وے هیره کړے ـ نو دوی به داسے هرګز نهٔ وو لیکلی ـ هم په دے ډول دحضور سره په پښتو ژبه کښے خبرے منسوب کول هم ډیرلوئے جرأت دے ـ په دے لیکوالو کړے دے ـ

۱۰:ـ دبخت نصرحمله او بنی اسرائیل :ــ په دے نظریه کښے دحضرت سلیمانؑ دوفات نه پس په بنی اسرائیلو باندے دبخت نصرحمله په داسے ډول ذکر شوی ده ـ چه دهغے نه دا تاثر پیدا کیږی ـ چه ګوندے دا حمله به سمدستی شوی وی ـ حالانکه دبخت نصر دحملے او دحضرت سلیمانؑ د وفات ترمینځه کم و زیات څلور سوه کالونه تیرشوی دی ـ ولے دڅلورو سوو کالو په دے اوږده زمانه کښے ددے خبرے هڅوک پته نهٔ لګی ـ چه دحضرت سلیمانؑ دوفات نه پس د آصف او افغنا څه انجام شو ؟ دافغنا دخوش تدبیرئ، حسنِ انتظام اوکثرت اولاد او قابلیت ذکر خو دے لیکوالو په ډیرو شاندارو الفاظو کښے کړے دے ولے ددے باوجود دافغنه خپل خیالات اود هغهٔ داولاد حالات دڅلورو سوو کلونو په دے اوږده زمانه کښے بیخی نامعلوم دی ـ اوداهیڅ پته نهٔ لګی چه په دے عرصه کښے افغنه اود هغهٔ اولاد په خپل قامی ژوند کښے کوم کردارادا کړے وو؟

دایو تاریخی حقیقت دے چه دحضرت سلیمانؑ دوفات نه پس دهغهٔ دځوی رحبعام د تخت نشینئ په دریم کال د بنی اسرائیلو لسو قبیلو دهغهٔ نه بغاوت اوکړو ـ

او د یربعام «نوے یوسړی په ماتحتۍ کښے ئے جدا سلطنت قائم کړو - د بنی اسرائیلو دا سلطنت د اسرائیلی سلطنت په نامه مشهور وو - او ددے صدرمقام «سماریه» وو - د «رجعام» سلطنت د بنی اسرائیلو په یوے قبیلے «یهودا» قائم وو - او ددے سلطنت صدرمقام یروشلم وو - د بخت نصر حمله د یهودا په سلطنت شوے ده ولے د بخت نصر د دے حملے نه سل شپږ سوه کاله اول د بنی اسرائیلو په سلطنت (سماریه) آثوری باچا سلمان سار حمله کړی وه - او بنی اسرائیل ئے بند یوان کړی او د خپل وطن نه ئے په شړلو مجبور کړی وو - دا خلق (بنی اسرائیل) د سلمان سار په حکم د میډیا په ښارونو کښے آباد کړے شوی وو - ددے حقیقت په رڼا کښے چونکه د دے نیکوالو په قول پښتانه د هغه بنی اسرائیلو اولاد دے کوم چه په غور کښے پناه گزین شوی وو. او ددے واقعاتو نه د غور علاقے ته د بنی اسرائیلو داخراج او هلته د دوی د قیام بطلان کیږی - په دے بنا دا ټوله خبره بے بنیاده ثابتیږی - دا سے معلومیږی چه د ۷۲۱ ق - م په خوا وشا کښے چه د آثوری باچا له خوا د «سماریه» کومه محاصره شوی وه - دا نیکوال د هغے نه بیخی ناخبره دی - د دوی د بنی اسرائیلو دوهمی اسارت واقعات د تورات په الفاظو کښے دا سے دی :-

او د شاه یهودا آخز د سلطنت په دولسم کال د «ایله» ځوی «هوسع» په سامریه کښے د اسرائیل باچا شو - او هغه نهه کاله حکومت اوکړو - او هغه د خدائے پاک په نظر کښے بدی اوکړه - بیا هم د اسرائیل د هغه بادشاهانو په شان نه کوم چه د هغه نه مخکښی تیر شوے وو - او شاه اسور «سلمان سار» په هغه راوختو او هوسع د هغه غلام شو - او د هغه د پاره ئے تحفے راوړے - او شاه آسور د هوسع سازش معلوم کړو - ځکه چه هغه (هوسع) شاه مصر «سو» ته استاذی لیږلی وو - او شاه آسور ته ئے تحفه ورنه کړه - کومه چه به ئے کال په کال ورکوله - پس شاه آسور هغه قید کړو - او په قید خانه کښے ئے ورله بیړئ ورواچولے - او شاه آسور په ټول ملک یلغاندے حمله اوکړه - او سامریه ته لاړ - او هغه ئے درے کاله پورے گیره اوساتله - او د هوسع په نهم کال شاه آسور سامریه اونیوله او اسرائیل ئے قید یان کړل - او آسور ته ئے بوتلل - او هغوی ئے په خیلخ کښے او د جوزان په واله خابور باندے او د مادیانو په ښارونو کښے آباد کړل ئے

«او شاه آسور د بابل، کوته، عوا، حمات او سفر وایم - خلق داولوستل.

او د بنی اسرائیلو په ځای ئې د سامریه په ښارونو کښې آباد کړل ئې (۲- سلاطین باب ۱۷ — آیت ۱ تا ۷، ۲۴)۔

د تورات د دې حوالو نه دا معلومه شوه چه د بخت نصر د حملې نه ډیر اګاهو اسرائیلیان د خپل سلطنت نه د آسوری باچایانو د لاسه جلا وطن شوې او د میډیا په ښارونو کښې آباد کړې شوی وو۔ نو د بخت نصر د حملې په وجه د دې لسو قبائیلو د خپل ملک نه د تښتیدلو او د غور په غرونو کښې د دوی د آبادیدلو هډو سوال نه پاتې کیږی۔

د بنی اسرائیلو د دې اسارت نه پس د ۵۸۶ ق۔م په خواوشا کښې بخت نصر د بابل باچا د یهودا په سلطنت حمله اوکړه۔ د دې حملې واقعات د تورات په الفاظو کښې دا سې دی:۔

"او د صدقیا شاه یهودا د سلطنت د نهم کال په لسمه میاشت او په لسمه ورځ دا سې اوشول چه د بابل بادشاه بنوکد نصر سره د خپلو ټولو فوځونو په یروشلم حمله اوکړه۔ او د ښار مخامخ ئې خیمې لګې کړې۔ او د ښار مخامخ ئې حصارونه جوړ کړل۔ او د صدقیا بادشاه د سلطنت تر یوولسمه کاله پورې ښار محاصره وو۔ او د څلورمې میاشتې د نهمې ورځ نه پس په ښار کښې دا سې قحط شروع شو چه د ملک د خلقو د پاره خوراک نه پیدا کیدلو۔ نو بیا په فصیل کښې کنډراوشو۔ او د دواړو دیوالونو تر مینځه کومه دروازه چه شاهی باغ ته مخامخ وه۔ هغې نه شپه په شپه ټول جنګی ځوانان اوتښتیدل۔ د غه وخت کسدیانو ښار ګیر کړې وو۔ او بادشاه د بیابان لاره ونیوله۔ لیکن د کسدیانو فوځ په باچا پسې اووتلو۔ او هغه ئې د یریحو په میدان کښې راګیر کړو۔ او د هغه ټول لښکر د هغه د خواوشا نه تار په تار شو۔ پس بادشاه ئې اونیولو۔ او په رملة کښې ئې د شاه بابل بنوکد نصر په خدمت کښې پیش کړو۔ او په هغه حکم اولګولې شو۔ او هغوی د صدقیا د ځامن د هغه د سترګو د وړاندې قتل کړل۔ او د صدقیا سترګې ئې اوویستلې۔ او په زنځیرونو کښې ئې وتړلو۔ او بابل ته ئې بوتلو"۔

او د شاه بابل بنوکد نصر د سلطنت په نولسم کال د پنځمې میاشتې په اوومه ورځ د شاه بابل یو نوکر نبوز رادان چه د جلو دارانو سردار وو۔ یروشلم ته راغې۔ هغه د خدائې کور، د بادشاه محل او د یروشلم هر کور ئې په اور اوسوزولو۔ او د کسدیانو ټول لښکر چه د جلو دارانو د سردار سره وو۔ د یروشلم د پناه دیوال ئې د څلورو واړو طرفونو نه اوغورځولو۔ او باقی خلق ئې او هغه خلق ئې چه خپل ئې پریښې وو۔ او د بابل د باچا په پناه کښې راغلی وو۔ او

په عوامو کښې چه څوک باقي پاتې وو۔ هغه ټول د جلو دارانو سردار نبوزرادان گرفتار کړل۔ او بابل ته ئې بنديوان بوتلل۔ ليکن د جلو دارانو سردار د ملک کنګال او غريبانان پريښودل چه هغوی به د کرکيلې کار او د انګورو د باغونو څوکۍ کوی۔ (د دے نه پس د هيکل مقدس د هغه لوښو تفصيل دے چه د غه سردار بابل ته اوړی وو۔)

" پس يهودا د خپل ملک نه اسير لاړ۔ او کوم خلق چه د يهودا په زمکه پاتې شول چه دوی د بابل باچا نبوکد نصر پريښی وو۔ په هغوی باندے ئې جدليا بن اخي قام بن سافن حاکم مقرر کړو " (۲۔ سلاطين باب ۲۵۔ آيت ۱ تا ۲۲)۔

لکه چه د پورته حوالو نه څرګنده ده۔ بخت نصر په سلطنتِ يهودا درے ځله حملے کړی دی۔ په دے حملو کښې د يهودا سلطنت تباه شو۔ په زرګونو يهوديان او وژلے شول۔ او په زرګونو د بخت نصر په حکم بابل ته بنديوان راوستلے شول۔ او په زرګونو يهوديان او وژلے شول۔ او په زرګونو د بخت نصر په حکم بابل ته بنديوان راوستے شول۔ ديوناني مؤرخ زينوفن په الفاظو کښې يو سنګدل قصاب هم په دومره بے رحمۍ سره کړے بړے مذبح ته نه بيائی۔ څه رنګ چه دهٔ يهوديان بابل ته بيولی وو۔ د دے حملو شدت او د بخت نصر جبر و قهر چه په خيال کښې اوساتلے شی نو د دے خبرے تصور هم نهٔ شی کيدے چه د بخت نصر د حملے نه بهٔ ګوندے په دومره لويه پيمانه اسرائيليان تښتيدلی وی۔ لکه څه رنګ چه ددے ليکوالو خيال دے که چرے د تورات شهادت ته اوکتلے شی نو ددے نه هم ديهوديانو د تيښتے مرسته نهٔ کيږی۔ بلکه د دے نه دا معلوميږی چه ډير يهوديان خو وژلی شوی وو۔ او د ملک نور قابل ذکر اولس ګرفتار بابل ته بيولے شوے وو۔ او صرف هغه کسان په يروشلم کښې پريښودلی شوی وو۔ کوم چه د ملک کنګال او غريبانان خلق وو۔ او په هغوی باندے هم د بخت نصر د لوری نه حاکم مقرر شوے وو۔ په دے صورت کښې د يهوديانو د تيښتے نهٔ سوال پيدا کيدے شی او نهٔ امکان۔

په بابل کښې د يهوديانو د اسيرۍ زمانه د تورات مطابق اويا کاله وه۔ دا زمانه په قومي لحاظ سره د دوی د تباهۍ او پريشانۍ زمانه وه۔ د دوی قوميت تباه شوے وو۔ د دوی هيکل مقدس وران شوے او د دوی ښارونه د زمکے سره هوار شوی وو۔ دوی په اجتماعي لحاظ سره د تباهۍ د ژورے کندے په غاړه اودرولی شوی وو۔ په بابل کښې د دوی د ژوند زمانه د غلامۍ او مايوسۍ زما وه۔ او دوی نهٔ پوهيدل چه د دے هلاکت او بربادۍ نه پس به د دوی د دوباره ژوند سامان څه رنګ پيدا شی؟ په دے زمانه کښې په دوی کښې دانيال

نبي پيدا شو چه د خپل علم او حکمت له کبله د بابل په دربار کښې د لوئې عزت او احترام خاوند شوے وو۔

د بخت نصر نه پس « بيل شازار » د بابل بادشاه شو۔ دَده د سلطنت په دوئم کال دانيال نبي يو خوب اوليده۔ په دغه خوب کښې د يهوديانو د آزادۍ زيرے ورکړے شوے وو۔ او د دوی دا آزادی د خوروس (کوروش) هخامنشي باچا د ظهور سره وابسته ښنټيلی شوی ده۔ چنانچه دوی هم په دے طمع د ژوند شپے ورځے تيرولے۔

« بيل شازار » يو ظالم عياش او نفس پرست باچا وو۔ دغه باچا وو چه د هيکل مقدس په پاکو لوښو کښې ئے شراب څښلی وو۔ او د دے کبر او غرور په نتيجه کښې خدائے پاک دده سلطنت د خوروس (کوروش) هخامنشي د لاسه تباه کړه۔ او خوروس د خپل سلطنت په وړومي کال يهوديانو ته آزادی ورکړه۔ او د هيکل مقدس هغه ټول لوښي چه بخت نصر لوټ کړی۔ او د بابل په خزانه کښې ئے ايښی وو۔ د يهوديانو يو امير زربابل ته حواله کړل۔ او ټولو يهوديانو ته ئے خپل وطن ته د تلو اجازت ورکړو۔

د اسيرۍ نه پس هغه ټول آزاد شوی يهوديان چه د زربابل په مشرۍ کښې فلسطين ته لاړل د هغوی د خاندانی قبيلو نومونه او شمار د « عورا » نبي په کتاب کښې موجود دے۔ دا ټول خلق دوه څلويښت زره درے سوه او شپيته وو۔ د دوی سره اووه زره درے سوه او درے ديرش وينځے مرئيان هم وو۔ او دوه سوه سندر غاړی ښځے سړی هم په دوی کښې شامل وو۔

د بخت نصر بابلي د لاسه د يهوديانو د اسارت سره د دے نظريے هغه حصه چه په اسرائيلي تاريخ اړه لری ختميږی۔ د تورات د شهادتونو له مخه د ساؤل د وفات[1] نه واخلے د اسرائيليانو د وړومي اسارت[2] تر زمانے او بيا د بخت نصر د لاسه د يهوديانو په بابل کښې د قيد و بند تر وخته[3] پورے موږ د دے نظريے د اهم کردار افغنه او د هغه د اولاد په حقله هيڅ او نه ليدل۔ او نه مو د هغه خبرو څه ثبوت بيا موند کوم چه د « افغنا » سره منسوب بيان شوی دی۔ نو د دے شهادتونو په رڼا کښې به ښاغلی لوستونکی په خپله د دے نظريے د قدر او قيمت اندازه او لګولے شی۔

---

(۱) سنه ۱۰۹۱ ق۔م (۲) سنه ۷۲۱ ق۔م (۳) سنه ۵۸۶ ق۔م

د بابل سلطنت د کوروش د لاسه دړے وړے شو - یهودیان آزاد او بیرته فلسطین ته اورسیدل - او د خپل هیکل مقدس او خپلو کورونو په دوباره تعمیر کښے لګیا شول - د تاریخ په پرده بے شماره واقعات څرګند شول - د کوروش او د هغه[۱] د کورنۍ دوه سوه کالیز سلطنت د سکندر مقدونی د لاسه تالا ترغا شو - سکندر لکه د برق او بریښنید و - او د رعد په شان او بریښید و - ولے د هغه د فتوحاتو عمر د هغه د خپل عمر هومره اوږد هم نهٔ شو - د هغهٔ جرنیلانو د هغهٔ د مرګ نه پس په یو بل تورے بنخ کړے - او د سکندر د سلطنت مشرقی صوبے چه د پښتنو علاقه هم پکښے شامله وه - د هغهٔ د یو جرنیل سلیوکس لاس ته راغلے او د دے واقعاتو په نتیجه کښے د یونانیانو مستقل حکومت په دے علاقه کښے قائم شو - د دے نه پس په مختلفو وختونو کښے مختلفو قامونو وار په وار د پښتنو دا علاقه د غوښتو غوبل کړه - او بیا ئے خپله دوره ختمه کړه او د دے خاورے سره خاورے شول - دغه شان د بخت نصر د حملے نه پس نور دولس سوه کاله تیر شول -

په دے دولس سوه کاله کښے موږ د بنی افغان په حقله چه هغوی د دے نظریے مطابق د غور په غرونو کښے استوګن شوی وو - د پورته روایاتو مطابق سوا د دے نه نور هیڅ څه واؤ نه ریدل - چه د دے خلقو به د دے علاقو د مشرکانو نه بیولے وے - د بخت نصر د حملے نه دولس سوه کاله پس د عربو په زمکه د اسلام نمر راوختلو - اسلام په خپله جولۍ کښے د دنیا بے کسه مظلومه او دردیدلی انسانانو ته دامن او سکون او یو نوی ژوندن پیغام راوړے وو - ولے په دے پیغام کښے د انسانانو د یوے ډلے د پاره چه د خپل طاقت په غرور کښے د انسانی حقوقو غاصبان وو مرګ هم موجود وو - نو د غاصبانو دے ډلے د خپل طاقت په پوره زور د اسلام د پیغام مخالفت شروع کړو - او د دے مخالفت په نتیجه کښے د مکے نه مدینے ته د حضور[ص] هجرت واقعه شو -

په دغه زمانه کښے د دے لیکوالو مطابق د غور د دے بنی اسرائیلو ته د حضرت خالد[رض] د لوری نه د اسلام دعوت راغے - (حضرت خالد[رض] هم د دے نظریے مطابق نسلاً بنی اسرائیل وو -) د دے دعوت په جواب کښے دے خلقو د خپل یو مشر قیس په مشرتوب کښے یوه جرګه مدینے ته اولیږله - د دے جرګے په مدینے کښے د حضور[ص] سره ملاقات

[۱] غزنے او قندهار په دے نومونو بلکه شاید چه په نورو نومونو هم لا په دے زمانه کښے آباد نهٔ وو

اوکړو- ایمان ئے راوړو- او دجرګے دمشر قیس نامه دحضورؐ دلوری نه په عبد الرشید بدله شوه- او هم په دے موقع ده ٔ له دحضورؐ له خوا د رملک اوبطان) مطابونه ورکړے شول- قیس د مکے په غزوه کښے هم شامل شو- او چه بیرته راغلو نو داسلام په تبلیغ کښے لګیا شو- او په سلسه کښے وفات شو-

څه رنګ چه ددے نظرئے دهغه حصے کومه چه داسرائیلی تاریخ سره مربوطه ده جاج مود تورات دشهادتونو په رڼا کښے اخستے دے- دغه رنګ په ددے حصے جاج داسلامی تاریخ په رڼا کښے واخلو-

داسلامی تاریخ نه دومره خبره مرسته موی چه کوم وفدونه اوجرګے په مدینه کښے دحضورؐ په خدمت کښے حاضرے شوے وے- په هغوکښے څینے سری د قیس په نامه هم وو- نو دا امکان څوکیدے شی چه په دے سړو کښے شاید چه یو "قیس" دهغه سړے وی- چه دخراسان اوسیدونکے او احتمال لری- چه دغور د علاقے استوګن وی- ولے داخبره چه قیس دمکے په غزوه کښے شامل شوے دے او حضورؐ هغهٔ ته دملک اوبطان خطاب ورکړے دے- یو موضوعی روایت دے چه داسلامی تاریخ نه ئے مرسته نهٔ کیږی- دفتح مکه واقعات په تاریخونوکښے په تفصیل سره موجود دی- دسیرت نبویؐ مؤرخینو دحضورؐ متعلق هره خبره اهمه ګڼلی ده- او په تاریخ کښے ئے لیکلی ده- بیا داخو ډیراهم واقعات وو- خصوصاً چه دقیس دحضرت خالدرضؓ هم قوم او دهغهٔ په دعوت راغلے دے- نو دا خبره به ضرور ذکر شوی وه- ده "ملک اوبطان" افسانه هم بے بنیاده ده- دا ظاهره ده چه ملک یوائے دپښتنو سره مخصوص نهٔ دے- بلکه دا لفظ ډیرهغه خلق هم استعمالوی کوم چه په یقینی ډول پښتانهٔ نه دی- هم دغه رنګ دبطان لفظ په دے غرض ایجاد کړے شوے دے چه په هند کښے پښتانهٔ په پټهان پیژندلے شول-

داخبره هم دفکروړده چه حضرت خالدرضؓ یو لوئے نومیالے صحابی وو- او دټولو اسلامی مؤرخینو دقول مطابق د مخزوم دقانګے اود قریشو په قبیله کښے وو- ولے دا لیکوال ئے اسرائیلی ګڼی - دا یو داسے خبره ده چه دټول اسلامی تاریخ نه خلاف ده- حضرت خالدرضؓ بن ولید دخپلے پوهے، جسمانی طاقت، جنګی قابلیت او خاندانی شرافت له مخه د یو لوئے حیثیت خاوند وو- داسلام نه وړاندے هم هغه په قریشو کښے ډیرسترګه وراو مخوریز وو-

نوموړی داسلام په مخالفت کښے ئے ډیره مؤثره حصه اخستی ده - دا حُد په جنګ کښے

دمسلمانانو فتح په شکست بدلول - د حضرت خالدبن ولید د جنګی قابلیت کارنامه ګڼلے شی ـ او د مسلمانید و نه پس چه هغهٔ د اسلام په لار کښے کومے کارنامے سر ته رسولی دی - د هغ په وجه د سیف الله خطاب ورته حاصل شوے دے - او داد عزت او لوړتیا یو لوئے مقام دے - نو د داسے سړی د حسب نسب خبره هیچرے په مللة او تذ بذب کښے نهٔ شی کید لے -

دا خبره هم د فکر وړ ده چه که چرے خالدؓ بن ولید اسرائیلی وے نو په مدینه کښے هم یهودیان موجود وو - او دے یهودیانو چه مسلمانانو ته څومره نقصان رسولے شو په هغ کښے ئے څه کمے نه کولو - نو خالدبن ولید چه د غور اسرائیلیا نو ته دعوت ورکولو نو هغهٔ خپل اثر او رسوخ د مدینے په یهودیانو ولے نهٔ استعمالولو - او که چرے دا تسلیم کړے شی چه واقعی حضرت خالدؓ د غور بنی اسرائیلو ته دعوت ورکړے وو - او قیس د هغهٔ په بلنه مدینے ته حاضر شوے وو - نو بیا به دا منل هم ضروری وی چه د غور د اسرائیلو او د یثرب د اسرائیلیانو ترمینځه به با قاعده تګ راتګ او تعلقات قائم وو - په دے صورت کښے به د قیس قام قبیله او د هغهٔ د استوګنے ځائے په یقینی ړول معلوم وو - او د هغهٔ حالت به په تیرو کښے نه وو - په دے بنا نهٔ خو حضرت خالدؓ بن ولید اسرائیلی وو او نهٔ هغه قیس عبدالرشید ته خپله لور په نکاح ورکړی وه - او نهٔ ئے دعوت ورکړے دے -

په دے نظریه کښے د حضرت خالدؓ بن ولید شمولیت غالباً چه د مورخ فرشته دد ے لیک نه د غلط فهمئ په بنا وی - فرشته لیکی چه خالدبن عبدالله یوعرب چه په یو روایت د ابوجهل په اولاد کښے وو - او په یو روایت د خالدبن ولید په اولاد کښے په ۶۲ھ کښے د کابل د حکومت نه معزول شو - او د خلیفه د ویرے نه بیرته خپل وطن ته نه شو تلے نو په کوه سلیمان کښے استوګن شو - او دلته ئے یو مسلمان پښتون ته خپله لور په نکاح ورکړه - د هغ نه دوه ځامن اوسول - چه د یو نامه لودی او د بل نامه سور وه - د زمانے په تیرید وسره د ۱۴۳ھ په خوا وشا کښے د دوی اولاد دومره ډیر شوے ووچه د پیښور، کوهاټ او بنوں وغیره علاقے ئے نیولے وے " د فرشتے دا روایت د تاریخی شهادت په رڼا کښے درست نهٔ دے - کابل د ۶۲ھ پورے خوځه چه د ۱۴۳ھ هم لا مسلمانانو په قبضه کښے نه وو راغلے - او نهٔ د ۶۲ھ پورے د مسلمانانو اثر په مضبوطو بنیاد ونو د کابل او قندهار وغیره علاقو کښے قائم شوے وو - په دغه ورځو کښے د کابل، غزنی، او قندهار علاقے د رتبیل شاهانو په تصرف کښے وے - نو د مسلمانان حاکم د معزول کید و څو هډو سوال نهٔ پید اکیږی - بهر حال

احتمال کیدے شی ۔ چه د فرشتے دغه روایت دے لیکوالو درست گڼلے وی۔ او د فرشتے په روایت کښے ئے د خالد بن عبدالله نه خالدبن ولید مراد اخستے وی۔ او د هغه سره ئے دا افسانه وابسته کړی وی۔

ددے نظریے مطابق د قیس د مسلمانیدو او د مدینے نه خپل وطن ته د رارسیدو سره سم اسلام په پښتنو کښے خور شوے معلومیږی۔ او دا گمان کیدے شی چه پښتانه به په ایره په قامی حیثیت په اسلام کښے داخل شوی وی ولے دا یو داسے خبره ده چه تاریخی واقعات ئے تردید کوی ۔ "البیرونی" د لسمے صدیٔ مسیحی په لړ کښے داباسیند نه په قبله د کابله پورے آباد پښتانهٔ قبائیل د سرکش، سرتیزه، بغاوت پسنده او هندو مذهبه په الفاظو ذکر کړی دی ۔ د یو لسمے صدیٔ په آغاز کښے د محمود غزنوی او انند پال په جنگونو کښے که یوطرف ته د محمود په فوځونو کښے مسلمانان پښتانهٔ شامل وو نو د انند پال په مرسته غیر مسلم پښتانهٔ هم جنگیدل ۔ په دولسمه صدیٔ کښے د محمود غزنوی غوری سره که مسلمانان پښتانهٔ وو ۔ نو د پرتهوری راج په فوځونو کښے د غیر مسلم پښتنو رساله هم موجوده وه۔ د تیراه او خیبر په غیر مسلم پښتنو د محمد علی غوری حمله د هغهٔ د زمانے مشهوره واقعه ده۔ دا ټول تاریخی واقعات ددے خبرے مرسته کوی چه د شپږمے صدیٔ هجری پورے به قامی او اجتماعی حیثیت کښے ټول پښتانهٔ لا مسلمانان نهٔ وو ۔ البته دا درست ده چه هغه پښتانهٔ چه د غزنوی او غوری سلاطینو په فوځونو کښے شامل شوی وو ۔ او د حکومت صدر مقاماتو سره نږدے وو ۔ هغوی په ابتدا کښے اسلام راوړے وو ۔

دا خبره هم د فکر وړ ده چه د قیس عبدالرشید نه د ساؤل پورے کومه شجره چه دے لیکوالو درج کړی ده هغه د ساؤل د هغه شجرے نه مخالفه ده۔ کومه چه په تورات کښے د ساؤل په حقله موجوده ده ۔ د قیس شجره خو وړاندے بیان شوی ده۔ او د ساؤل شجره د تورات په شهادت داسے ده۔ (د پورته نه په ښکته)

او د نیر نه قیس پیدا شو ۔ او د قیس نه ساؤل او زیږیده ۔ او د ساؤل نه یونتن ملکیشوع، ابینداب، او اشبعل پیدا شو۔ او د یونتن ځوی

مریبعل وو - او د مریبعل ځوئے میکاه وو - او د میکاه ځامن فیتون، ملک، تابع او آخز وو - او د آخز نه یهد عده پیدا شو - او د یهد عده نه علمت عزماوت او زمری پیدا شو - او د زمری نه موضا او د موضا نه نبعه پیدا شو او د بنعه نه رافعه، د رافعه ځوئے العیسه او د العیسه ځوئے اصیل وو - د اصیل شپږ ځامن وو - چه نومونه ئے دا دی - عزریقام، بوکرد، اسمٰعیل، سفریا، عبدیا، او حنان - دغه ټول د اصیل ځان وو - (۱ - تواریخ، باب ۸، آیت ۳۳ - ۳۸)

د پورته معروضاتو نه دا خبره واضحه شوه چه دا نظریه په خپل موجوده شکل کښې نهٔ خو د تورات د شهادتونو نه څه مرسته موهی - او نه د اسلامی تاریخ نه، او دا سے معلومیږی چه بیخی په زبانی او موضوعی روایاتو مبنی ده - دا روایات په اولسے صدئ کښې وضع شوی دی - او دا ظاهره ده چه محض روایات د تاریخی واقعاتو ځائے نهٔ شی نیولے - البته که داسے اووئیلے شی چه پښتانهٔ نسلاً سامی النسل دی - او د تاریخی شواهدو په رڼا کښې دا خبره ثابته شی نو په منلو کښې به ئے نهٔ څه اشکال وی - او نهٔ انکار -

دا نظریه لکه چه مو اووئیل د تاریخی شواهدو په رڼا کښې ډیره کمزوری ده حقیقت دا دے چه د قامونو د اصل نسل مسئله د یو فرد واحد سره مربوط کول او په شجرو باندے د هغ بنیاد کیښودل نهٔ څه موزونیت لری - او نهٔ څه جواز - بیا هم که د دے نظریئے پس منظر او لټولے شی - او په کومه زمانه او کومو حالاتو کښې چه دا نظریه وضع شوی او مروج شوی ده د هغ جاج واخستے شی - نو دا به معلومه شی چه د دے نظریئے واضعینو بنهٔ په غور او فکر دا نظریه وضع کړی ده - او د حالاتو مطابق ئے یو درست او موزون کار کړے دے - او دا وئیل به بے ځایه نه وی - چه دے لیکوالو چه د خپلو تحقیقاتو په رڼا کښې څه کړی دی د هغه وخت د تقاضو سره ئے مطابق کړی دی -

د پښتنو او مغلو آویزش او رقابت ډیر پخوانے وو - دواړه قامونه د یو بل سیاسی حریفان وو - پښتانهٔ د مغلو په نسبت ډیر وړاندے متمدن او مهذب شوی وو - او د مغلو نه ډیر وړاندے په اسلام کښې داخل شوی وو - د غزنوی او غوری بادشاهانو د مغلو په وجه دوی د هند سره بلد شوی او د مغلو نه ئے ډیر وړاندے د

هند په زمکه سیاسی اقتدار موندلے وو۔ او حتیٰ چه د دے اقتدار په وجه په هند د عظیم
سلطنتونو په تشکیل کښے هم کامیاب شوی وو۔ ورستو چه مغل مسلمانان شول۔ او د
تهذیب په دائره کښے داخل شول۔ نو د افغانستان په زمکه د دوی مقابله د پښتنو
سره وه۔ په خپل اصلی وطن کښے خو پښتانهٔ د خپل قبائلی نظام حیات او قامی خصوصیاتو
په وجه د دے قابل نهٔ وو چه دوی په دے زمکه یو مقتدر سلطنت قائم کړے وے۔
او د مغلو مقابله ئے کړے وے۔ ولے په هند کښے حالات جدا وو۔ ولے پښتانهٔ د
سیاسی عروج خاوندان وو۔ او ترڅو چه د پښتنو په قامی اتفاق کښے رخنے نهٔ وے
پیدا شوی ترهغې د مغلو سیاسی ارمانونو وده نهٔ شوه کولے۔ لیکن دا حالات د
شپاړسمے صدئ په آغاز کښے بدل شول۔ کوم وخت چه بابر په هند حمله اوکړه۔
او د هغې په نتیجه کښے د هندوستان تخت و تاج د پښتنو نه مغلو ته منتقل شو
نو په هند کښے هم د مغلو سیادت قائم شو۔ ولے سره د دے چه په هند کښے مرکزی
طاقت د مغلو په لاس کښے وو بیا هم د پښتنو سیاسی طاقت بیخی ختم شوے نهٔ وو۔
البته منتشر شوے ضرور وو۔ او دا توقع کیدے شوه چه که دا خور وور طاقت بیا په
یو مرکز راغونډ شی نو د دے نقصان تلافی به اوشی۔ دا موقع پښتنو ته ډیر زر په لاس
ورغله۔ د بابر د وفات نه پس پښتانهٔ د شیرشاه په سرکردګئ کښے بیا د سیاسی
اقتدار خاوندان شول۔ او د هند سلطنت د مغلو نه دوباره پښتنو ته منتقل شو۔
د سلطنت د دے انتقال د مغلو او پښتنو په سیاسی رقابت کښے نور هم شدت پیدا
کړو۔ شیرشاه چه کومه طریقه د خپل سلطنت د وسعت او استحکام کار شروع
کړے وو۔ د هغې نه دا توقع کیدے شوه چه د مغلو د پاره به دوباره د هند په
زمکه پښه کینودل ناممکن شی۔ او که چرے قدرت شیرشاه ته کافی موقع ور
کړے وے او یا د شیرشاه په اولاد کښے یو بل شیرشاه پیدا شوے وے۔ نو امکان
کیدے شو چه د هندوستان تاریخ د مغلو د ذکر نه خالی پاتے وے۔
ولے داسے اونهٔ شول۔ ځکه چه شیرشاه هم زر وفات شو۔ او د هغهٔ په اولاد
کښے هم څوک بل شیرشاه پیدا نهٔ شو۔ او د عادل شاه سوری په زمانه
کښے همایون هند بیا ترلاسه کړو۔ ولے هغه هم زر وفات شو۔ او د هندوستان تاج
او تخت خوش نصیب اکبر ته پاتے شو۔ اکبر یواځے دا نه چه یو زورور فاتح وو بلکه د
سیاست د کبر لیچونو نه هم ښهٔ خبردار وو۔ په دغه زمانه کښے سلطنت

مغلیه ته په هندکښې ددوو قامونو یعنې پښتنو او راجپوتونه خطره وه - اکبر ددے دواړو قامونو حقله مختلف پالیسي اختیار کړه - راجپوت هغه په مینه، رواداری او رشتوناطو خپل کړل - او پښتانهٔ چونکه د مغلو سیاسی رقیبان وو - نو د هغوی سره ئې زورآزمائی شروع کړه - او په هندکښې د پښتنو د سیاسي طاقت وړے لوټے نیبے نښانے هر ځائے چه وے د هغې په ورانولو او ختمولو کښې بوخت شو - د هند په زمکه اګرچه اکبر د پښتنو په مغلوب کولو کښې خو کامیاب شو - ولے د اباسین نه په قبله اباد و پښتنو قبائلو د هغهٔ دا ارمان ریږدیدلو ته پرے نښود - او د پښتنو او مغلو دا زور آزمائی د اکبر نه جهانګیر ته په میراث کښې پاتے شوه - اکبرکهٔ یو طرف د پښتنو د مغلوب کولو د پاره د فوځي طاقت نه کار اخستو نو بل طرف ته مغل مؤرخینو د قامی تذلیل تحریک شروع کړو - او د دوئ په حقله ئې داسے بے سروپا افسانے وضع کړے چه د هغې په وجه د پښتنو قامی ،،انا،، او خودی ،، مجروح کیدله او د هغې لازمی نتیجه په پښتنو کښې د احساس کهتری پیدا کیدل وو -

مغل او ایرانیان دواړه د خپل وخت استعماری طاقتونه وو - او پښتانهٔ د خپل جغرافیائی محل وقوع په وجه ددے استعماری قوتونو په مینځ کښې ګیر وو - پښتون یو داسے بدقسمته قام دے چه د خپل آزادی پسند طبیعت او د خپلے آزادئ په جرم کښې د تاریخ په هره دوره کښې د استعماری طاقتونو لخوا په نازیبا او ناموزونو الفاظو یاد شوے او د انسانیت سوز سلوک مستحق ګڼلے شوے دے - د پښتنو د قامی تضحیک او تذلیل په لړکښې ایرانیان هم د مغلو هم غاړي وو - ترڅو چه پښتنو هرے نوموړی کارنامے ته به د عیب کوته نیولے شوه - د دوئ د اصل نسل په حقله هم د مغل دربار مورخینو بے سروپا افسانے وضع کړے - او خورے ئې کړے - پښتنو اګرچه خپل سلطنت خو بائللے وو - ولے په دے تحریک د هغوی قامی تذلیل کیدلو او د احساس کهتری د پیدا کیدو په وجه د دوئ د قامی هستئ د فنا کیدو خطره وه - دا ظاهره ده چه دا یو خطرناک تحریک وو - او ټولو پښتنو به په شدت سره محسوس کولو - او دا احساس به هغه پښتنو ته زیات کیدلو کوم چه د مغل دربار په امیرانو کښې شامل وو - چنانچه د پښتنو مشرانو ددے تحریک د دفعیے د پاره د پښتنو د اصل نسل مسئلے ته توجه اوکړه او د خان جهان لودی په سرپرستئ کښې نعمت الله هروی د مخزن افغانی په نوم تاریخ اولیکلو - او په هغې کښې ئې دا نظریه په اول وار پیش کړه او دا کتاب د وروستنو ټولو لیکوالو مأخذ او ګرځیدو - د هغه شان ددے نظریئے په پښتنو کښې د یوے عقیدے حیثیت اوموندلو - زما دا قیاس د شوکت افغانی ددے اقتباس نه هم مرسته مومی -

،، دا افغانانو په نسب باندے د ښمنانو شرمناکه حملے کړی دی - او کله ؟ هغه وخت چه

دافغانانو د بخت ستورے دځپلے بے اتفاقئ له کبله په دوبیدو وو - او د مغل بادشاهانو د بخت ستورے په عروج وو - دغه وخت د شاه عباس صفوی ایرانی سفیر د جهانګیر بادشاه دوړاندے د مغلوب حریف (پښتانهٔ) په نسل کښے داعیب راااوښکلوچه په یو معتبر کتاب کښے (د ا " معتبر " کتاب څهٔ رنګ چه هغه وخت دخیال په الماری کښے بند وو دغه رنګ اوس هم دے -) دا لیکلی دی چه افغانان د " دیو " نه پیدا دی[1] - او د دے ځپل لغو او بے هوده بیان سره ئے سریښ یوڅائے کړے او ځپله ئے هم د دے بیان مرسته اوکړه - د سفیر په دے بکواس باندے چه د چارچاپیر نه د آمنّا او صدقنا ځغ نعرے اوچتے شوے نو خان جهان لودي[2] (چه د مغلو په دربار کښے د هغهٔ عزت په دے وجه قائم وو چه د هغهٔ پلار او نیکهٔ یعنی دلاورخان لودي او دولت خان لودي حاکم پنجاب ، د مغلو په دوستئ کښے او د افغانانو په دشمنئ کښے ځپل سرونه ورکړی وو -) دا اراده اوکړه چه د ایرانی سفیر د دے بکواس تردید اوکړی - او د افغانانو د نسل اصلیت ظاهر کړی - اګرچه هغه (خان جهان لودي) ته د خر دلتے د جواب ورکول ضروری نهٔ وو - ولے غیرت مند کله کتلے اوریدے شی - او هغه هم بیا افغان چه سلطنت خوئے باج کړو - ولے په پوزه ئے لم پرے نښود - له دے کبله خان جهان لودي ځپل امیران لکه قطب خان ، سرمست خان ابدالی ، همزه خان توخیٔ ، عمرخان کاکړ ، ظریف خان یوسفزے ، افغانستان ته اولیږل ، او دا یقین ئے حاصل کړو چه افغان بنی اسرائیل دی ، چه سلسله نسب ئے د یهودا[3] ابن یعقوب نه وړاندے ترسام ابن نوح پورے چه د یافث مشر ورور دے رسی او دا یافث د مغل قوم مورث اعلیٰ دے - اګرچه دا د تحقیقاتو واقعی نتیجه وه - ولے غالب قوم کله دا زغملے شوه چه د هغوی مغلوب حریف دِ په نسب کښے د هغوی نه زیات شی - په دے بِنا په دے تحقیق باندے ئے د ګان ستائنے الزام اولګولو چه تر اوسه پورے د کاني کړیږی[4] ده -

لکه چه د پورته اقتباس نه دا معلومیږی خان جهان لودي د پښتنو د نسل د معلومولو په غرض د ځپلو امیرانو یو وفد افغانستان ته اولیږلو - او دوفد د تحقیقاتو په نتیجه کښے

---

[1] د ایرانیانو لخوا د پښتنو داصل په باب کښے د دیوزاد افسانه په خورشید جهان کښے په تفصیل سره ذکر ده -

[2] نواب خان جهان لودي ابن دلاورخان لودي ابن دولت خان لودي د جهانګیر یو مشهور سپه سالار وو - د شاه جهان په وخت کښے ئے بغاوت اوکړو او د شاهی فوځونو د لاسه په سنه ۱۶۳۱ء اووژلے شول -

[3] ساول د اکثرو مورخینو په خیال کښے د بن یمین په اولاد کښے دے - او تورات هم د دے مرسته کوی -

[4] شوکت افغانی ص ۲۱-۲۰

دا معلومه شوه چه پښتانهٔ بنی اسرائیل دی - سوال دا پیداکیږی چه پښتنو خپل نسل په بنی اسرائیلو ولے ورګډُلو؟ - زما په خیال کښے ددے وجوهات دا وو:-

(۱) پښتانهٔ د بنی اسرائیلو په شان په خپل نسل یوغاوره قام دے - د پښتون قام هر فرد د غیرپښتون په مقابله کښے خپل ځان په فرق ګڼي - د پښتون معنیٰ ده شریف ، اصیل او د ښو اخلاقو خاوند ، بنی اسرائیلو به هم خپل نسل د نورو نه دومره په فرق ګڼلو چه دوی به د غیراسرائیلی خلقو د بزرګئ او لوئے والی اعتراف ته هډو تیار نهٔ وو -

(۲) په هغه زمانه کښے او ددے نه ډیره زمانه وړاندے وروستو هم د تورات دا نظریه په خلقو کښے مقبوله وه - چه ټول بنیادم د حضرت نوحؑ د درے ځامنو سام، حام او یافث اولاد دے - او سام ته پخپلو نورو رونړو فضیلت حاصل دے - په دے بنا د سام اولاد هم د نورو وروڼو په اولاد باندے فضیلت لرﺉ[۱] -

(۳) دا نظریه په هند کښے وضع شوی ده - او دغه وخت په هند کښے د پښتنو نه علاوه قابل ذکر قامونه یا مغل وو - او یا هندوان - مغل حکمران قام وو او د یافث په اولاد کښے وو - نو د مغلو سره خو د نسلی اشتراک هډو سوال نهٔ پیداکیدو - پاتے شو هندوان نو دوی د حام په اولاد کښے وو - ولے یو خوا هندوان د پښتنو تر سوونو کالو محکوم پاتے شوی وو - بل دا چه هندوان بت پرست وو - او د مسلمانانو چه د بت پرستئ نه څومره نفرت دے هغه معلومه خبره ده - نو په مذهبی لحاظ سره هم دوئ دا غوره نهٔ ګڼله چه خپل نسل دِ دَ یو محکوم او بت پرسته قام سره ورګډه کړی - بل لور ته بنی اسرائیل اګر چه اهلِ اسلام خو نهٔ وو ولے اهل کتاب خو ضرور وو - او عقیدتاً او د مذهب له مخه د بت پرستئ نه متنفر وو - په دے لحاظ د هندوانو په نسبت د پښتنو په نظر کښے قابلِ احترام وو - دا خبره د پښتنو لیکوالو د طرز تحریر نه څرګند ده -

---

[۱] دا خبره یاده ساتل پکار دی - چه اګرچه دنیا تر ډیرے مودے د کتاب پیدائش په دے خبره مطمئنه ده او عام طور دا منلے شوه چه ټول قامونه د حضرت نوح د دریو ځامنو سام حام او یافث اولاد دے - لیکن اوس ددے خبرے علمی قدر و قیمت بیخی مشکوک دے او هیڅوک دے خبرے ته په دا سے نظر نهٔ ګوری څرنګه چه یو تاریخی بیان ته کتل پکار وی - زیات نه زیات دا یو داسے لیک دے چه په هغے کښے موږ ته (سنه ۵۳۰ ق.م) یهودی تصورات ښکاریږی - بے شکه چه په کښے څهٔ حصه د هغه مقدسو روایاتو هم ده کوم چه په قومی حافظه کښے محفوظ پاتے شوے وو - ولے د دګرو سره بابلی او آسوری روایتونه هم ورګډ شوی دی - او دا د بابل د اوریدے استوګنے قدرتی نتیجه ده - (د مولانا ابوالکلام آزاد مرحوم د یوے مقالے اصحاب کهف نه) -

(۴) د ایرانیانو سره د نسلي اشتراک سوال هم نهٔ پیدا کیدلو - او نهٔ په هغه زمانه کښې لکه د اوسنۍ زمانې د انساني نسل تقسیم او اشتراک د انسان شناسۍ د علم په اصولو مبني وو - بنا په دے د پښتنو د نسلي افتخار د جذبے تسکین د بني اسرائیلو سره په نسلي اشتراک کښې کیدے شو - د غه وجه ده چه دوئ دا نظریه وضع کړه - ولے دا سے معلومیږي چه د مغلو په درباري مؤرخینو دا هم نهٔ ځائیدله - چه پښتانهٔ دِ په نسل کښې د مغلو نه افضل اوګڼلے شي - نو په پښتنو باندے ئے د ځان ستائینے الزام اولګولو - لکه چه دا خبره د شوکت افغاني د هغه وړاندے اقتباس نه ځرګنده ده -

الغرض چه د پښتون د قامي خصوصیاتو او د نسلي افتخار د جذبے په رڼا کښې په دے نظریه غور او کړے شي - نو دا سے معلومیږي چه د دے ډېره کړي د پښتون د حالاتو سره مطابق او په ډیر غور او فکر وضع شوی ده - ولے د دے واضعین هغه خلق وو چه هغوی یا خو په هند کښې پیدا شوی او لوئے شوی وو - او یائے د خپل عمر لویه حصه په هند کښې تیره کړي وه - د پښتنو د اصلي مرکز او وطن سره د دوئ تعلق او څه ربط نهٔ وو - پاتے شوے دوی هسے د قام او نسل له مخه خو پښتانهٔ وو، ولے د پښتنو د ژوند خوئ بوئ، او د پښتو ژبے نه بیخي نابلده وو - پښتون قام دوئ د پښتون په نامه نهٔ پیژندلو - او نهٔ ئے "پښتون" د دے قام اصلي نامه ګڼله - د دوئ په خیال کښې "پښتون" اول "افغان" وو - ځکه چه د هغے زمانے مؤرخینو دا قام د افغان په نامه یاد کړے وو - او وروستو پټهان وو - ځکه چه پښتانهٔ په هند کښې د پټهان په نوم مشهور وو - عربي مؤرخینو هم د غه قام د افغان په نامه یاد یاد کړے وو - ایرانیانو به ورته هم افغانان وئیل - د غه وجه ده چه د دوئ په خیال کښې د دے قام اصلي نامه افغان وه - پښتون د دوئ په خیال کښې ضمني حیثیت لرلو نو ځکه د بني اسرائیلو سره د نسلي اشتراک قائمولو نه پس په زور تاریخ کښې دوئ ته د یو دا سے بنیاد او ریښے ضرورت وو - چه د هغې سره د افغان رشته او تړي - چنانچه په دے نظریه کښې د ساؤل په کورنۍ کښې د "ارمیا او افغنا" افسانه وضع کول هم په دے غرض شوی که چرے دے لیکوالو پښتانهٔ د پښتون په نامه پیژندلے او د پښتنو تاریخ ئے لیکلے وے نو ممکنه ده چه دا نظریه دا سے نهٔ وے -

هم په دے ډول چونکه پښتون یو شجاع قوم دے او د مذهب سره هم مینه لري، د غه رنګ حضرت خالدؓ بن ولید هم د اسلامي تاریخ یو ځلاندهٔ میړهٔ دے - تر دے چه حضورؐ د هغهٔ د میړانے ستائینه "دا سیف الله توره" په خطاب سره کړي ده - او دا د عزت او افتخار یو

لوړ مقام دے ۔ نو د حضرت خالدؓ سره د یو نسبت او رشتې په قائمیدلو کښې هم د پښتون قام د شجاعت د جذبے تسکین موجود وو ۔ او موزونیت ئې هم هم لرلو ۔ نو د حضرت خالدؓ او د قیس (عبدالرشید) د هم قومئ روایت ئې هم وضع کړو ۔

لیکن په موجوده شکل کښې د دے نظریئ هره کړئ چونکه نه خو د عبرانئ تاریخ نه او نهٔ د اسلامی تاریخ لخوا مرسته موی نو بنا په دے په موجوده شکل کښې دا ډیره کمزوری ده البته که دا اوو ثیلے شی چه پښتانهٔ سامی النسل دی نو دا به یوه جدا مسئله شی۔

# دَ پښتنو دَ نسل څیړنه

## پښتانهٔ څوک دی؟

(۲)

د پښتنو د اصل نسل په باب کښې څنې خلق دا نظریه هم لری چه دوی د حضرت ابراهیمؑ نه د بی بی قتورے اولاد دے ۔ په دے لحاظ سره د دے نظریئ مطابق پښتانهٔ نسلاً بنی قطوره دی ۔ د دے نظریئ مرستیال وائی چه د " بی بی ساره " د وفات نه پس حضرت ابراهیمؑ بی بی قتوره په خپل زوجیت کښے واخسته ۔ او د هغې نه ئې شپږ ځامن او شول ۔ چه نومونه ئې د تورات مطابق دا دی :۔

زمران ، یقسان ، مِدان ، مِدیان ، اسباق ، سوخ ۔

د بی بی قتورے په دے شپږ و ځامنو کښے په تورات کښے صرف د دوؤ ځامنو یقسان او مدیان اولاد ذکر دے ۔ او د باقی څلورو ځامنو ئې صرف نومونه ذکر دی ۔ او د اولاد ئې ذکر نشته ۔ او د دے وجه دا ده چه د کتاب پیدائش مطابق حضرت ابراهیمؑ په خپل ژوند کښے د " ساره بی بی " د اولاد نه علاوه د نورو بیبیانو اولاد د ځان نه رخصت کړے وو لکه چه دا خبره د کتاب پیدائش باب ۲۵ - آیت ۵ - ۶ نه معلومیږی " او ابراهامؑ هر څهٔ اسحاق ته ورکړل. او د نورو بیبیانو ځامنو ته ئې ډیر انعامونه ورکړل ۔ او د مشرق په لور ئې د مشرق ملک ته ئې اولیږل ۔"

د بی بی قتورے د کومو ځامنو اولاد چه په تورات کښے ذکر دے ۔ د هغې تفصیل د کتاب پیدائش باب ۲۵ - آیت ۳ ـ ۴ مطابق دا سے دے ۔ او د یقسان نه سبا او دوان پیدا شول. او د " ددان " په اولاد کښے اسوری ، لطوسی ، او لومی وو ۔ او د مدیان ځامن عیفا ، عفر ،

حنوک او ابیداع او الداعا وو - او دا ټول بنی قطوره وو -

دکتاب پیدائش ددے پورته شهادت مطابق ددے لیکوالو داخیال دے چه د بی بی قتورے هغه ځامن چه په تورات کښے ئے د اولاد ذکر نشته - هغوی دپلار په ژوندکښے دمشرق په لورتلی وو - داخلق دایران په شمال مغربي علاقه کښے چه هغه وخت په توران مشهوره وه آباد شول - په دے وطن کښے دا نووارد "مدی" په نامه مشهور شول - ولے دزمانے په تیریدو سره داخلق د پارسیانو سره داسے خلط ملط اوګډ وه شول چه بیلتون ئے ګران شو - ولے د بی بی قتورے دوه نور ځامن یقسان او مدیان پخپله علاقه کښے استوګن وو - دغه وجه ده چه د حضرت موسیٰ په وخت کښے په کتاب پیدائش کښے د دوی د اولاد نومونه هم اولیکے شول - دغه وخت داخلق د دشت سینا سره متصل په سرزمین ایکه کښے آباد وو - د مدیان اولاد په مدیانی او د یقسان اولاد په یقسانی مشهور وو - د یقسان په اولاد کښے حضرت شعیب پیدا شو او ددے نه پس دا قوم په قینی مشهور شو - په تورات کښے حضرت شعیبؑ په درے نومونو "یترو" "حوباب بن دعوائل او قینی" یاد شوے دے - حضرت شعیبؑ د حضرت موسیٰؑ سخر هم وو - او دا ښدا نه د بنی اسرائیلو او "قینیانو" تعلقات خوشګوار وو. دغه وجه ده چه کوم وخت د ساؤل (طالوت) دبادشاهۍ په زمانه کښے د بنی اسرائیلو او عمالیقو ترمینځه جنګونه شروع شول نو د حضرت سموئیل په هدایت طالوت دے قینیانو ته اووے چه تاسو د عمالیقو د مینځ نه اوځئ - د تورات په الفاظو کښے ددے وجه دا وه

اول ساول قینیانو ته اووے تاسو د عمالیقو د مینځ نه اوځئ - هسے نه چه زهٔ تاسو هم د عمالیقو سره هلاک کړم - حال دا دے چه تاسو د بنی اسرائیلو سره چه هغوی د مصر نه راوتلی وو - ډیرے مهربانی کړے وے - پس قینیان د عمالیقو د مینځ نه اووتل - او ساؤل د حویلے نه واخلے تر سُور پورے چه مصر ته مخامخ دے - عمالیق اووهل او د دوئ بادشاه اُجاج ئے ژوندے اونیولو - او ټول خلق ئے د تورے نه تیر کړل"

د عمالیقو د مینځ نه ددے قینیانو د وتلو زمانه د مؤرخینو په خیال کښے (۱۰۹۳ق - م) په خوا وشا کښے کیدلے شی -

لکه چه د تورات د پورته شهادت نه معلومه شوه چه "قینیان" چه د "عمالیقو" د مینځ نه اووتل - نو دوی بیا چرته لاړل ؟ ددے نظریئے د لیکوالو په خیال کښے دا خلق چه اول په "سرزمین ایکه کښے آباد وو - او بیا ددے مزکے نه په وتلو مجبور شول نو دوئ د مشرق په

لوراوکوچیدل -او دایران په قطبي قبلیٔزه علاقه کښې میشته شول ـ ځکه چه هلته ددوی ځنې همقوم اوهمنسل ورونه د وړاندے نه میشته شوی وو. د دے لیکوالو دا قیاس هم د تورات په شهادت مبنی دے لکه چه د تورات د قضاة باب اول آیت ۱۶ نه دا ظاهره ده: «او د موسیٰ د سخر قیني اولاد دکجورو د ښارنه د بنی یهودا سره د یهودا بیابان ته چه د عراد جنوب ته دے لاړه. او هلته د خلقو سره میشتهٔ شول.»

په دے آیت کښې دعراد نه مراد د تورات په شهادت عراق دے. لکه چه د تورات د دے آیت نه معلومیږی. او دعراد کنعانی باچاچه دکنعان جنوب ته به اوسیدلو. د بنی اسرائیلو د راتلو نه خبرشو. (گنتی - باب ۳۳ - آیت ۴۰)

د پورته شهادت نه دامعلومه شوه چه قینیان دیهودا په ملګرتیا دیهو دا بیابان ته راغلل. ددے نه دا قیاس مرسته موی چه دلته به د وړاندے نه هم ځنے بنی اسرائیل آباد وو. د یهودا بیابان کوم ځائے کیدے شی؟ دکتاب پیدائش باب ۲۵ دځنې آیتونو په ښاد دے لیکوالو دا خیال دے چه په دے آیتونوکښې د« آرام » نه مراد دایران قطبی قبلیٔزه علاقه ده او دا قینیان هم دلته آباد شوی وو.

د زمانے په تیریدو سره دا خلق د پشت په علاقه کښې استوګن شول. ددے لیکوالو په خیال کښې پشت د سبزوار په خطه کښې دهغه علاقے نوم وو چه وروستو په هغځا منشی دوره کښې د « پارتیا » په نامه مشهوره ده. او په اسلامی دوره کښې به ورله «طبرستان» وئیلے شو. ددے نظریے مطابق د دے علاقے (پشت یا پشتیا) استوګن د زمانے په تیریدو سره اول د پاشتین او بیا وروستو دپښتون اوپښتانهٔ په نامه مشهورشول.

دا لیکوال وائی چه د ایران داشکانی خاندان بادشاهان هم هغه خلق دی کوم چه یونانی مؤرخینو د پارتین په نامه یادکړی دی. یعنی ددوی په خیال کښې د یونانی مؤرخینو پارتین هغه خلق دی. چه اول په قینیانو مشهور وو. او وروستو د « پاشتیا » داستوګنے دمناسبت په وجه ورله پاشتین اووئیلے شول. چونکه دا خلق دبی بی قتوره اولاد وو نو په دے لحاظ سره نسلاً ساميان وو. داخبره هم دفکر وړده چه آنګریزی مورخ «مسترتیلر» هم دایران اوساسی (پارتین) بادشاهان دپښتنو په نامه ذکرکړی دی[1].

په هرحال د تورات د دے پورته شهادتونو په بنا دومره ثابتیږی چه په قدیمه زمانه

---

[1] مرآة العالم جلد اول حصه دوم ص۲۶

کښې سامي قبائل د ایران قطبي قبیلېزې علاقې ته د مهاجرینو په ډول راغلي او په دې علاقو کښې میشته شوي وو. او دا ظاهره ده او وروستو به یې پخپله موقع وضاحت هم اوشي چه په دې علاقو کښې ځنې آریائي قبائل هم استوګن وو. نو د دې آریائي قبائیلو سره د ګډون او یوځائې استوګنې په وجه به د دوی ویبه او د ژوند ژواک لارې چارې د یو بل نه متاثر شوي وي ؛

د پښتنو په باب کښې ځنې خلق دا خیال هم ظاهروي چه پښتانه یوناني النسل دي. په پښتنو لیکوالو کښې د دې نظریئې سرګرم مرستیال ښاغلي عبدالغني خان دې. د ده په خیال کښې د پښتنو نومونه، د دوی د کلو او علاقو نامې د دوی رسمونه او رواجونه د دوی د ځلمو او زړو افراد و خط وخال د یونانیانو سره ډیر ژور مشابهت او نزدیکت لري. د دې په حقله تفصیلات د دې ښاغلي په خپل کتاب « دي پټهان » کښې ورکړي دي. خواهش مند یې په هغې کښې لوستلې شي.

په دې ډول ځنې خلق داسې هم دي چه دعوی ته په پښتنو کښې د منګولو او ترکانو نخښې نښانې هم په نظر راځي او د دې خیال ته مائل دي چه دا خلق (پښتانه) به د منګولو او ترکانو سره هم څه نسلي تعلق لري. دغه خبره دي چه د پښتنو د نسل مسئله یې ډیره پیچیده او ګرانه کړي ده. ولې اول د دې نه چه موږ د پښتنو د نسل په حقله یوې سکوتې نتیجې ته اورسو د پښتنو د نسل په باب کښې یوه بله مشهوره او مدلله نظریه هم ذکر کول ضروري دي.

# دپښتونسلي څېړنه

## پښتانهٔ څوک دي(۳)

### دپښتنو د اصل نسل په حقله دریمه نظریه

د پښتنو د اصل اونسل ځقله یوه بله مشهوره نظریه دا ده چه پښتا نهٔ د هغه آریا ئي قبائیلو یوه څانګه ده، کوم چه په تاریخ کښې د هند، وآرو پائي آریاګانو په نامه مشهوردی دانظریه دلفظ پښتون او پښتو ژبې په تاریخي اولغوی څېړنې مبنی ده.
دد ے نظریې مطابق هرکله چه د نولسې صدئ په آغازکښې د یورپي عالمانو او ژبپوهانو له خوا دهندوارو پائي اقوامو دژبوترمینځه نزدیکیت او اتحاد په علمی دلائلو سره ثابت شو نو دد ے نه عالمان دے نتیجې ته اورسیدل چه دد ے ژبو ویونکی قامونه دنسل له مخه یو خلق دی. او د دوی اسلاف په اوله کښې یوځائے اوسیدل. او د دوی ژبه هم یو ده. وروستو چه دے خلقو ددنیا مختلفوملکونو ته مهاجرت اوکړو نو دمختلف محیط او ماحول په اثرکښې ددوی ژبے هم بیلے بیلے شوے. ولے ددے ټولو ژبو مانځ هغه ژبه ده کومه په آریائي اقوامو په ابتداءکښې دمهاجرت نه وړاندے په خپل ابتدائي مسکن کښې وئیله . داژبه فرانسیسی محقق موسیو ګیبان د "آریک" په نامه یاده کړی ده. او اوس ښئي ورکه ده. په دے لړکښې د مغربي عالمانو لخوا دآریائي اقوامو د وړومبی مسکن ځقله تحقیقات اوڅیړنې شروع شوے او د هغه وخت نه واخلې په دے لړکښې دے عالمانو شپیږاووهٔ شله کاله خپل تحقیقات جاری اوساتل. او دد ے ځقله یې خپل خپل خیالات ظاهرکړل.
د آریائي قامونو وړومبے مسکن کوم وو؟ دآریاګانو د وړومبی ټاټوبي په باب کښې د عالمانو ترمینځه اختلاف دے. ځنې عالمان وائي چه د دوی اولنے مسکن دشمالي یورپ ملکونه یعنی سکنډے نیویا، یا فن لینډ یا د ډینیوب سینډ ناوه (وادی) ده. ځنې عالمان د بحیرهٔ اسود شمالي غاړے ددے قام داولنی استوګنے ځمکه ګڼي. ځنې خلق جنوبي روس او ځینے عالمان یې جزیرهٔ نمائے بلقان او ځنې نورئې د الټائي او رال ترمینځه ځمکے ددوی

داستوګنې ورومبنې مسکن ګڼي - ځنې عالمان دې عقيدې ته مائل دي چه د آريائي اقوامو داولنۍ استوګنې ځمکه دمنګوليا او چيني ترکستان علاقې دي - ولې اکثر مؤرخين او عالمان دې عقيدې ته مائل دي چه د آريائي اقوامو ورومبنې مسکن د "پامير" لوړې او درود آمو سرچينې دي - په هرحال د آريائي اقوامو ورومبنې مسکن هرچرته چه وو ، دا خبره ثبوت ته رسيدلې ده - چه د آريائي اقوامو هغه بناخ چه د هغوی ځنې قبائل هند ته او ځنې ايران ته تلي وو - او ځنې دروند آمو نه واخلې دا باسين ترقبلېيزه غاړې په دې ټوله خطه کښې ځائې په ځائې ميشته شوي وو - د هغوی د استوګنې ځائې باختر وو -

د باختر د استوګنې په دوران کښې اول اول د دې خلقو ژوند ډير ساده وو - د دوی عادتونه بيداو د شپيانو په شان وو - ولې دوی کوچيان او پونده نه وو - دوی به په ورو ورو کلوکښې اوسيدل[1] - د دوی ګذران به په پيوماستو او سبزۍ ترکارۍ وو - دکپړې په اوبدلو هم پوهيدل - د څرمنو رنګول يې هم زده وو - د دوی وسلې به اکثر غشي ليندې وې - کله کله به يې تيرونه هم استعمالول - د فلزاتو نه هم واقف وو - اوسپنه يې هم پيژندله ، او په کار به يې راوستله - اسونه به يې ساتل او ښۀ شهسوار وو - د دوی مذهبي عقائد هم ډير ساده وو - د دوی په مذهبي عقائدوکښې د ديويانو په نسبت ديوتاګانو فوقيت لرلو - دا خلق په ابتداء کښې د بت پرستۍ نه هم نابلده وو - د دوی مشهور ارباب انواع (ديوتاګان) ايندرا ، وارونا ، ميترا ، ناساتي ، اګني وغيره وو - دا داسې ارباب الانواع وو چه د وادۍ سنده په خلقو کښې غيرمعروف او د هغوی د پاره بالکل نوي وو - ګډا ، نڅا ، د رتهونو او اسونو زغلا او دداغ جواري د دې خلقو تفريحي مشغلې وې -

د باختر په ورشوګانوکښې چه د دوی آبادي زياته شوه - او رو رو دا ځمکه په دوی تنګه شوه نو د دې علاقې نه دا خلق په مهاجرت مجبور شول - ولې د دوی دا مهاجرت په يو وخت او په يو ايړ نۀ وو - دا باختري آرين په درې ډلوکښې ويشلې شي - د دوی يو بناخ چه وروستو د هندي آرين په نامه مشهور شو - د کوه هندوکش په

---

[1] د هندي اريانو د مذهبي کتاب رګ ويدا نه د دې خبرې مرسته نۀ کيږي - چه آريائي قامونه [illegible] په ابتدائي ځمکه کښې د وادۍ سنده د موهنجوداړو او هړپه په شان د ښاندارو [illegible] و نو مالک [illegible]

درو راتیرشو - ددے بناخ څنے قبیلے درود کابل او ددے سیند د مرستیالو سیندونو په لار دبحر د تګاو او لمغان په علاقه کښے میشته شوے او په قلاره قلاره څه د کونړ سیند کخښ ته اووتلے - او بیا د سوات سیند په کخښ کښے خورے شوے. او آخر ته په اباسین پورے شوے - او د پنجاب په زمکه میشته شوے . د دوی څنے قبیلے د خیبر په لار راووتلے او په اباسین پورے وتلے - دغه شان د دوی څنے قبیلے د ارغنداب په کخښ کښے هم میشته شوے او بیا په قلاره قلاره د بولان په دره د سند ه زمکو ته راښکته شوے - د زملے په تیریدو، اقتصادی ضرورياتو او د نوی نوی قبائیلو راتګ داخلق په دے خبره مجبورکړل چه نور هم د مشرق په لور خپلے پښے اوغزوی - چنانچه دوی په قلاره قلاره ډکنګا او جمنا ترمینځه میدانونه هم لاندے کړل - او درجه په درجه ئے د هند و پاکستان ټوله شمال مغربی علاقه په خپله قبضه کښے راوستله - ددے زمکے اصلی استوګن چه غالباً دراوړ قامونه وو - د آریا فاتحینو دلاسه څهٔ مغلوب شول او څهٔ د هند نورو علاقو ته لاړل -

دے خلقو به خپل ځان ته آریا یا آرین وئیلے - ددے لفظ معنیٰ ده . شریف ، اصیل او یا د کرکیلے کارکوونکے - او ملکی خلق به ئے د داس یا داسیو په نامه یا ډوّل[1] - دا ملکی خلق د خپل تور رنګ ، پلنو پوزو او مذهبی اختلاف له کبله د آریاؤ د پاره د نفرت قابل وو - د باختری آریا و ددے هندی ښاخ د مهاجرت تاکلی زمانه معلومه نهٔ ده - البته اکثرعالمان دے عقیدے ته مائل دی چه داخلق د سن ۳۰۰۰ ق-م او سن ۱۸۰۰ ق-م ترمینځه مینځه د باختر نه د هند په لورکو چیدلی دی -

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی. د باختری آریاؤ بله ډله د جنوب غرب په لور د هرات په حواله خراسانه تیره شوه - او د پارس مزکے ئے اونیولے - او اوسنے ایران ئے تشکیل کړو - د دوی د مهاجرت زمانه د سن ۱۹۰۰ ق-م نه پس او د سن ۱۰۰۰ ق-م نه وړاندے وړاندے ګڼلے شی - د ایران په زمکه دے قبائیلو ړومبے سلطنت د «ماد» په نامه د اووے صدئ ق-م په خواو شا کښے قائم کړو -

---

[1] د «داس» لفظ د رګ ویدا په دے سرود کښے راغلے دے ڈ اندرا «او په هغه پسے ماروت په داسیانو حمله اوکړه او هغوی ئے د تند ر په ګزارونو اووژل او د هغوی پټی او باړی ئے په خپلو سپین پوستو آریائی دوستانو اووېشلے -

[2] د «دارا» په کتبه ئے ستون کښے دا لفظ «مادا» لیک دے - میډیا ددے یونانی تلفظ دے - دا لفظ عربو «ماهات» ضبط کړے دے - ددے نه مراد د ایران شمال مغربی حصه ده -

د باختر د زمکے نه چه د آریائی اقوامو دوو لویو څانګو (هندی او آریائی ښاخونو) هجرت اوکړو۔ نوپسمانده قبائیلو ته هم زمکے اوزګارے پاتے شوے۔ دغه پاتے شوی آریائی قبائیل د مرکزی او بلختری آرین په نامه یادیږی۔ او ددے نظریئے د مرستیالو په خیال کښے هم دغه آریائی قبائیل د موجوده پښتنو اسلاف دی چه تاریخی څیړنه به ئے وړستو اوشی۔ داخلق د هندوکش په شمالی او جنوبی لمنو کښے ان د اباسین ترغاړے خوارهٔ وارهٔ ځائے په ځائے میشته شول۔ باختری (بخدی، بلخ) تخارستان، آریا (هرات)، اراکوسیا، کابل، ساکستانا اوکندهارا وغیره د دے خلقو د مختلفو قبیلو د هیواد مرکزی علاقے وے۔

**آریا ورته:-** هندی آرین چه د باختر د زمکے نه اوکوچیدل او د اباسیند نه پورے شول نو دوی دغه خپل نوے ملک د آریا ورته په نامه یادکړو۔ دا لفظ (آریا ورت) د منو په کتاب منو سمهیتا (MANU-SAMIHITHA) کښے راغلے دے۔ د مؤرخینو خیال دے چه شاید آریائی قبائیلو به د خپل ژوند په ابتدائی دوره کښے د رود آمو او سیر دریاب ترمینځه علاقے ته (چه د دے خلقو اولنے مسکن وو) هم آریا ورته ویئیل وروستو به د باختر زمکهٔ هم په دے نامه یادیدله۔ ځکه خو به هندی آریانو هم دغه خپل نوے ملک د خپل ابتدائی وطن په نامه یادکړے وی۔ دا هم امکان لری چه ګوندے د هندوکش په جنوبی لمنو کښے به دا لفظ د آریاورته په ځائے "آریا ورشه" ویئلے شو۔ احتمال لری چه د هندی آریاؤ "بهاراتا" قبیلے به په خپل وخت کښے خپلنوی مقبوضه علاقے (پنجاب وغیره) د "بها راته ورشه" په نامه له دے سببه یادے کړی وی۔ "ورشه" د "ورشو" په شکل کښے تراوسه پورے په پښتو ژبه کښے موجود ده۔ او د دے لفظ معنے چراګاه ده۔ نو د "بها راتا ورشه" معنیٰ شوه د "بهاراتا" قبیلے ورشو یا چراګاه، چونکه دا لفظ د آریاؤ د وړومبی ژوند سره تعلق لری۔ او د هغه زمانے یادګیرنه کوی په کومه زمانه کښے چه دوی مالداران (د څاروو خاوندان) وو، او ورشو یعنی چراګاه د دوی په نظر کښے مادی او معنوی اهمیت لرلو نوځکه به دوی دغه خپله زمکه په لفظ "ورشه" یاده کړی وی۔

**آریانا:-** هرکله چه آریائی قبائیل د کوهِ هندوکش په قطبی او سویلی اطرافو کښے خوارهٔ شول۔ او په دغه زمکه ئے استوګنه اختیارکړه نو دوی د استوګنے په وجه دا وطن د "آریانا" په نامه مشهورشو۔ د "آریانا" معنیٰ ده د آریانو یعنی د "نجیبانو وطن" دا لفظ دوه جزه لری۔ (۱) آریا۔ (۲) نا۔ دا "نا" په حقیقت کښے هم هغه (ن) مفتوحه دے چه وروستو د اوستا په زمانه کښے د "ایریا" کلمے سره نکیدلے دے -۱- د نسبت

مفهوم څرګندوی - وروستو په دے وزن نورے علاقے هم مشهورے شوے لکه ساکستانا (سکایانو وطن) - د رانجیانا یا زرنجیانا (د زرنجیانو مزکه) بکتریانا (د باختریانو علاقه) پښتانا (د پښتنو وطن) -

دا نوم (آریانا) یونانی مؤرخ اراتوس تنس «ERATOSTHANAS» چه د دریمے صدی ق. م په اوله نیمه کښے تیر شوے دے - په اول ځل په خپلو لیکونو کښے د افغانستان د موجوده علاقے د پاره استعمال کړے دے - د دے لیکوال لیکونه نن ورځ په لاس کښے نشته -

ولے یو بل یونانی مؤرخ استرابو (۱۹ — ۲۰ ق-م) دغه لفظ (آریانا) د پورتنی مؤرخ د خولے نه ذکرکوی - د استرابو نه علاوه بطلیموس ، پلینی ، او «اپولو دو روس ارتیس» هم د آریانا لفظ ذکرکړے دے - او په دویمه صدئ هجری کښے حمزه اصفهانی د «مملکت الاریان» په نامه د هغه ملک ذکرکوی چه د هند او ایران ترمینځ واقع دے - او دا ظاهره ده چه دا هم د افغانستان ملک دے -

**د رګ وید په سرودونو کښے د پښتو ګنوا د سیندونو غرونو او علاقو نمونه :-**

د هندی آریاو یو زوړ څوانے مذهبی کتاب د رګ وید په نامه یادیږی - دا کتاب (۱۰۲۸) سرودونه لری - چه په لسو برخو ویشلے شوی دی - د دے کتاب د هرے برخے ژبه د بلے نه څه ناڅه فرق لری - د وید پوهانو په خیال کښے د دے اختلاف وجه دا ده چه دا سرودونه په یو زمانه او یو وخت کښے نۀ دی وئیلی شوی بلکه مختلفو شاعرانو په مختلفو وختونو او مختلفو ځایونو کښے وئیلی دی - او کوم وخت چه هندی آریان د پنجاب په زمکه باندے په مستقل ډول استوګن شول نو بیا ئے دا کتاب مرتب کړو - د وید د ترتیب او تالیف په زمانه کښے هم د عالمانو ترمینځه اختلاف دے - ولے د اکثرو عالمانو په خیال کښے د دے کتاب د ترتیب زمانه د څینے شواهدو په بِنا چه ذکر به ئے وروستو اوشی - د دویم زر ق-م په مینځ مینځ کښے یعنی (د ۱۷۰۰ — ۱۵۰۰) خواوشا ګڼلے شی -

د رګ وید په سرودونو کښے د سِندو (اباسین) او د دے سیند د شرقی او غربی مرستیالو سیندونو نامے په ډیر واضح ډول راغلی دی - او دا د دے خبرے څرګند ثبوت دے چه آریائی قبائیل د دے سیندونو په ناوو (وادیانو) کښے استوګن پاتے شوی وو - دغه

---

لـه تاریخ افغانستان جلد اول د ښاغلی کهزاد

ـــه مقاله د ښاغلی محمدامین خان خوګیانی مجله پښتو (پښتو اکیډیمی پیښور یونیورسټی) -

پخوانی آریا چونکه مالداران وو - او د دوی گذاره به اکثر د غواگانو، غوایانو، کډو، بزو او نورو څاروو پالنه وه - او د دے نه علاوه به دے خلقو د خپلو قربانو رسمونه د سیندونو په غاړه اداکول نو د دوی دپاره داضروری وه چه دوی د سیندونو په ناوو او زرخیزه دروکښے استوګنه اختیارکړی - د رِګ وید په سرودونوکښے چه د پښتونخوا د کوموسیندونو نومونه راغلی دی هغه په دے ډول دی ؛

(۱) کوبها، (۲) سواستو (۳) کرومو (۴) ګوماتی (۵) سندو - په دے سیندونوکښے د ټولو نه مشهور کوبها او سِندو دی - د دے سیندونو د نامے تشریح په دے ډول ده ؛

(۱) کوبها (KUBHA) :- دا سیند چه یونانیانو د "کونن" په نامه یادکړے دے - او په رِګ وید اکښے د "کوبها" په نامه ذکر دے - مراد ترنه د کابل سیند دے - دا سیند سره د خپلو نورو مرستیالو سیندونو د اټک سره نزدو په اباسین ورګډیږی - دا سیند او د دے سیند کڅځ د آریائی قبائیلو د شاعرانو او عالمانو په مینځ کښے ډیره مشهوره وه ځکه چه د ډیرے پخوانۍ زمانے نه واخلے ترنن ورځے پورے دغه دره د هند و پاکستان او افغانستان ترمینځ د تګ راتګ قدرتی لارګڼلے شی - دا سیند (کوبها) د سیندونو د هغه سرودونو په لړکښے ذکرشوے دے کوم چه د سِندو (اباسین) په ستائینه کښے وئیل شوی دی - د سرود په پنځم اولسم جزوکښے د دے ذکر داسے شوے دے۔

(۱) اے سِندو ! (اباسین) ته اول د خپلو سرتیزه اوبو سره "تریشتاما" (TRICHTAMA) "راسا" (RASA) - "سوتی" (SUTI) - او "کوبها" (KUBHA) شاملوے او بیا د خپل کاډی سره "ګوماتی" (GUMATI) او "کرومو" (KRUMU) هم راکاږے -

(۲) د رب النوع "مادوت" (یاد) د عنوان لاندے د پنځم کتاب په سرود (۵۳) کښے هم د "راسا" "کرومو" "انی تابها" "کوبها" او سِندو ذکر شوے دے -

په پورته سرودونوکښے چه د کومو سیندونو نومونه بیان شوی دی په هغوکښے د "سِندو" نه مراد اباسین او د کوبها نه مراد رود کابل دے - د نورو سیندونو تشریح په دے ډول ده :

**کرومو** (KRUMU) - دا سیند د کرومو او یوځائے د "کرامو" په نامه یاد شوے دے۔ د دے نه مراد د کرُم سیند دے - د رود کابل د درے په شان د رودِ کرم دره هم د افغانستان او هند و پاکستان ترمینځه یو قدرتی مشهوره لار ده۔

**ګوماتی** : (GUMATI) ، د دے سیند نه مراد د ګومل سیند دے - دا نامه په

سرو دو نو کښې هيش د "کرومو" سره يوځائے ذکر شوی ده - دکومل دره هم دحيوانانو دپرورش دپاره ډيره موزونه ده - او دغه آرين قبائيل په دے دره کښې استوګن وو- نن ورځ هم د دے درے خواوشا په کثرت سره دڅاروو پالونکی دی -

**سوتي يا سواستو** (SUVASTU) په رِګ ويدکښې دا نامه د سواستو په لفظ او يونانيانو د سواستن په نامه ذکرکړی ده - د دے نه مراد د سوات سيند دے - دا سيند د رِګ ويد په څو نورو سرودونو کښې هم ذکر شوے دے - او په مها بهارت کښې د شمال غربي هند د علاقو په فهرست کښې هم موجود دے - چينی زائر هيون سانګ هم دالفاظ د سو-پو فا-سو- تو (SO، PO، FA، SO، TO) په الفاظو ذکرکړے دے - او مراد ترينه سوات دے -

"**راسا**" :- د لغوی معنے له مخه د دے لفظ معنیٰ اوبۀ يا سيندکيږی - د دے سيند يقينی تعين نۀ دے شوے - کيدے شی چه د دے نه مراد دکونړ سيند وی چه وروستو په کلاسيکی دوره کښې دخواسپس (KHOASPAS) په نامه ياد شوے دے - دا سيند درود کابل لوئے معاون دے -

**تريشتاما اواني تابها** :- دعالمانو په خيال کښې دا ديوسيند دوه نامے دی - د دے سيند ياسيندونو تعين نۀ دے شوے - کيدے شی چه د يو نه مراد رود پنجکوړه او د بل نه مراد رود "الی شنګ" وی -

څه رنګ چه د رِګ ويدا نه د پښتو خوا د سيندونو نامے معلوميږی - دغه رنګ د دے کتاب نه د سِندو (اباسين) د شرقی مرستيالو سيندونو نومونه هم معلوميږی - دا خبره دفکر وړده چه څه رنګ دآريا و دراتلو نه وړاندے د اباسين کڅئ ديو شاندار تهذيب مرکزوو - دغه شان دآريائ قبائيلو د قديم تهذيب زانګو هم د دے سيند ناوه وه - آريائی قبائيل د دے سيند (سندو - اباسين) نه ډيرمتاثر وو - تر دے چه دوی خپله نامه هم د دے سيند په نامۀ (سندو) موسومه کړه - وروستو دا لفظ د اوستا په اثرکښې "هندو" شو او ايرانيانو په خپل وخت کښې دغه ملک د هند په نامه يادکړو -

په رِګ ويدا کښې چه د پنجاب دکومو سيندونو نومونه ذکرشوی دی - هغه په دے ډول دی -

(۱) سوشوما (رود سوهن) - (۲) وتستا (VITASTA - رود جهلم) - (۳) اسکينی (ASKINI - رود چناب) - (۴) پاروشنی (PAROSHNI - راوی) - (۵) ويپاس (VIPAS - بياس) - (۶) سترو دی (STURDI - ستلج) - (۷) سراسواتی (SARASVATI - سرسوتی) - (۸) جمنا - (۹) ګنګا -

(۱۰) سرابو -

هغه جغرافیائی خطه چه د ویدی زمانے آریائی قبائیلو په قبضه کښے افستی وه - هغه په واضح ډول ددے پورته سیندونو نه معلومیږی - په رِگ وید کښے ددے سیندونو ذکر د دے قیاس مرسته کوی چه دا آریائی قبائیل د مشرقی افغانستان نه ګنګا د بالائی کڅئ پورے په دے ټوله وسیع خطه قابضان شوی وو - د دے علاقے یوه لویه خطه د "سپته سندهو" په نامه مشهوره ده - دا لفظ په اوستاکښے د "هپته هندو" په لفظ ضبط شوے دے. ددے لفظ معنیٰ ده د اووۀ سیندونو منطقه یا اووۀ سیندونه - دځینے عالمانو دا خیال دے. چه ددے نه مراد د پنجاب خطه ده -

**ګندهارا** :- (وادئ پیښور) - دا نوم د وادئ پیښور د پاره د یونانی مورخینو له خوا استعمال شوے دے - ولے دا لفظ ددے علاقے د پاره په رِگ وید کښے هم ذکر دے - د رگ وید په سرودونو کښے د ګندهارا او ددے علاقے د سیندونو ذکر ددے خبرے مرسته کوی چه آریائی قبائیل په دے زمکه استوګن وو - د رِگ وید په سرودونو کښے د ګندهارا د ګډو بزو ډیره ستائینه شوے ده . هندی محقق شاندرا داس داسے وائی چه د رِگ ویدا د سرودونو له مخه د ګندهارا علاقه د ګډو بزو د پالنے د پاره ډیره موزونه معلومیږی - د هندوانو مذهبي کتابونو نه دا هم معلومیږی چه د ګندهارا استوګنو د مها بهارت په جنګونو کښے هم حصه اخستی وه - دا خلق په مها بهارت کښے د سرحدی نسل خلق یاد شوی دی -

**دارغنداب منطقه** :- ځینے عالمان دارغنداب منطقه هم د ویدی زمانے د آریائی قبائیلو په جغرافیائی خطه کښے شامله ګڼي - د رِگ ویدا په سرودونو کښے لکه چه پورته وئیلے شوی دی . د "سراسواتی او سرایو" په نامه دوه سیندونه ذکر دی - مشهور مستشرق "میکس میولر" او کیت دا عقیده لری چه د "سرا سواتی" نه مراد د پنجاب سرسوتی سیند دے چه دا نبالے په جنوب کښے بهیږی - او بیا په شګو کښے پټ شی - ځینے عالمان داسے هم دی چه د هغوی په خیال کښے ددے سیند نه مراد اباسین دے - دوی وائی چه د "سرا سواتی" معنیٰ ده د پریوانه او بو سیند ده - او چونکه اباسین د اوبو د پریوانئ له کبله یو لوئے سیند دے نو د سراسواتی نه مراد هم دغه اباسین دے - لیکن دا قیاس ځکه درست نۀ معلومیږی - چه اباسیند د سندو په نامه په رِگ وید اکښے بیا بیا ذکر شوے دے - نو دا اباسین نشی کیدے - بکار

---

[1] پروفیسر مریم دار ایم اے هم د ګندهارا په حقله په خپل کتاب "پخوانی هند" کښے ددے خبرے تائید کوی.

ده چه دابل سیند وی هم دغه شان ددې معنی مطابق دانباله د فواس سوا تی سیند د دې مصداق نهٔ شی کیدې ځکه چه دغه سیند داوبو پریوانی نهٔ لری -

البانی مستشرق ګلبرانټ دې خیال ته مائل دې چه د دې سیند نه مراد د « ارغنداب » سیند " دې - دغه نامه په اوسته کښې د « هراویتي » په نامه ضبط ده - چونکه د ویدی لفظ « سرا سواتی معنیٰ ده د پریوانه اوبو سیند - نو دغه معنیٰ هم د ارغنداب په سینه بخته ګکی - د دې نه علاوه د دې سیند دا اوسنۍ نامه (ارغنداب) هم د پخوانۍ نامې معنې مرسته کوی - په دې شان چه ارغنداب دوه جزه لری - (۱) ارغند - چه معنیٰ ئې ده تند او غصه ناک - او (۲) آب - په معنیٰ د اوبو یعنی سیند - نو د دې اصطلاحی معنیٰ شوه د تیزو او تندو اوبو سیند او دا معنیٰ د سراسواتی د معنې سره جوړښت لری - په دې ډول دا هم امکان لری چه د « سرایو » نه به مراد « هرالوئ » وی - دا نامه په اوستاکښې د هری رود د شادابې خطې د پاره استعمال شوی ده.

**بهلیکا (بلخ)** - اګرچه دا خبره منلی شوی ده چه بلخ او باختر د هندی یورپي آریاؤ مرکز وو او د دې ځائ نه داخلق هند، ایران او یورپي ملکونو ته تلی دی - ولې د دې باوجود د بلخ یا بلختر ذکر په رِګ ویدا کښې نشته -

د دې وجه څرګنده ده - یعنې دا چه آریائی قبائیل د بلخ او باختر په علاقه کښې په ډیرې پخوانۍ زمانې کښې استوګن وو - او د رِګ ویدا سرودونه د مهاجرت په زمانه کښې په مختلفو وختونو او مختلفو ځایونو کښې وئیلې شوی دی - سربیره په دې د دې معلومو سرودونو نه علاوه نور سرودونه هم وو چه دغه د هندوکش په شمال کښې وئیلې شوی وو - او اوس ورک دی - یعنې د وید دا موجوده سرودونه د زمانې له مخه د مهاجرت د ورځو سره او د مکان له مخه د هندوکش د جنوبی علاقو او د پنجاب زمکو ته منسوب دی نو ځکه د بلخ او باختر د ذکر نه خالی دی - سره د دې په اتهر ویدا ( ATHER VEDA ) کښې بلخ د بهلیکا (BEHLIKA) په نامه ذکر دې - دغه قوم په مها بهارت او د سنسکرت په کلاسیکی ادب کښې هم ذکر دې او ځنې آریائی قبیلې چه د باختر نه لیږدیدلې او په اباسین پورې شوې او د پنجاب په زمکو میشته شوې وې - هغه د بهلیکا په نوم مشهورې وې - د دې کلمې ریشه بهلی یا باهلی ده او د دې لفظ (هـ - ل) چه په (خ - د) تبدیل شی نو بخدی یا باخدی به ترینه جوړ شی - او دا هغه نامه ده چه په اوستا کښې د بلخ د پاره ذکر شوی ده.

**د منجوان غرا و موجاوات قبیله** :- د اتهر وید په حواله د « سوما » بوټی

چه دآریاؤ دلپسند مشروب وو ـ به دمنجوان په غرکښې ټوکیدلو ـ د دې غر نامه په ټول پښتوانۍ شکل کښې تراوسه پاتې ده. د «منجوان» نه مراد دمنجان غر دې ـ په دې نامه د نورستان او بدخشان ترمینځه یو دره هم شته ـ

ـ دمنجوان او منجان ترمینځه صرف د (واوّ) فرق دې ـ (واوّ) او (الف) چونکه دواړه دعلت توری دی نو په تلفظ کښې (واوّ) اوس غورزیدلے دې ـ او منجان پاتې دې ـ داغر دهندوکش په شرقی لړکښې داخل دې ـ د دې نه علاوه په اتهروید اکښې دمنجوات په نامه د یو قوم ذکرهم دې ـ دمسټرمیکډونلډ په عقیده کښې د دې نه مراد هغه قبیله ده چه د منجوان یا موجاوات غرهٔ په خواو شاکښې اوسیدله ـ او ډکندهاری قبیلے سره بخته او په ګوانډکښې وُه[له] ـ چونکه ګندهاری قبیله په ګندهارا کښې اوسیدله او دګندهارا نه په وسیع مفهوم کښې هغه خطه مراد ده چه دکابل او پېښور ترمینځه واقع ده. نو دا هم د دې خبرې یو دلیل دې چه او سنې منجان هم هغه پښتوانے منجوان وو او دمنجوات قبیله به دګندهارا قطب ته د لمغاناتو او د نورستان په څنډ حصو کښې اوسیدله.

**دلفظ آریا ریښه په نومونو کښې :-** دکوه هندوکش په دواړو غاړو دآریائی قبائیلو داستوګنې له کبله د دې زمکے دسیند ونو او سنارونو په نومونو کښې دلفظ آریا ریښه خورا زیاته په استعمال کښې وه او تراوسه پورې په څنې نومونو کښې موجوده ده لکه په مثال کښې :-

(۱) هرایو (HARAyu) یوه نامه ده چه په اوستا کښې د هری رود د سرسبزې خطے دپاره استعمال شوی ده ـ په دې کلمه کښې د پښتوانی لفظ (آریا) ریشه موجوده ده چه اوس د زملے په تیریدو د هری آریا نه هرات شوے دے ـ

(۲) هرا ویتی :- اوستا دغه نامه د ارغنداب د منطقې د پاره وئیلی ده ـ په دے لفظ کښې "هرا" د زړے کلے (آریا) موجودګی څرګندوی ـ دغه شان د ارا کوزی په کلمه کښې چه یونانیانو دغه لفظ د ارغنداب د خطے د پاره استعمال کړے دے ـ د پښتوانی کلے ریښه د "آری" په شکل کښې موجوده ده. اوکه دآثوری دورے مطالعه اوشی نوهورے هم دغه لفظ (ارا) د (اراکوتی) او (اراکوتس) په شکل کښې لیدلے شو ـ دغه علاقه

---

[له] دنبکټی دیر په علاقه کښې ننورځ هم دموغباڼ په نوم یوکلے موجود دے ـ دا احتمال هم ممکن دے چه دموجاوات قبیله به شاید چه په ښکټی دیر کښې اوسیدله ـ او دغه شان به دګندهاری قبیلے ګوانډی وه ـ (مؤلف)

عرب لیکوالو د «الرخیج» په لفظ ذکر کړیده. او نن ورځ هم داعلاقه د «الکوزیانو» مسکن دے.

(۳) آریاکا (ARIAKA) د مارجیان په صوبه کښې د یو پخوانی ښار نامه وه. د دے ښار استوګن به هم د آریاکے (ARIAKAI) په نامه یادیدل. په دواړو لفظونو کښې (آریا) په خپل شکل کښې موجود دے.

(۴) آریاسپ :- د درانجیانا د صوبے یو زوړ ښار وو. چه د «هیرمند» په غاړه آباد یادیږی. د دے ښار اوسیدونکی به د «آریاسپه» په نامه یادیدل. یعنی داسونو خاوندان. په دواړو لفظونو کښې د آریا کلمه څرګنده ده.

(۵) اریستوفیل : (ARISTO PHYLES) بطلیموس د کابل د صوبے د قبلیٹز لوری خلق په دے نامه یاد کړی دی. او د دے لفظ معنیٰ ده داصیل نسل خلق. د دے لفظ په وړومبی جزو کښې (آریا) د (اری) په شکل کښې څرګند دے.

(۶) ارتاکانا (ARTAKANA) د هری رود د منطقے یو پخوانے ښار وو. چه د سکندر د حملے نه وړاندے د اریا (هرات) د صوبے مرکز وو. د آریه ریشه د (ار) په شکل کښې په دے لفظ کښې هم موجوده ده.

**د لفظ پښتون تاریخی څیړنه :-** څه رنګ چه د هندی آریاؤ د مذهبی کتاب رِګ ویدا نه د پښتو خوا د سیندونو او څنے علاقو نومونه معلومیږی. د غه رنګ د دے کتاب نه په آریائی قبائیلو کښې د څنے قبائیلو نامے او د هغوی په حقله څه لږ ډیر معلومات هم په لاس راځی.

لکه چه وړاندے وټیلے شوی دی د آریائی قبائیلو مشهور ارباب الانواع ایندرا، وارونا، میترا، ناساتی، سوریا (نمر) او اګنی (اور) وو. په دے ارباب الانواعو کښې سرفهرست «ایندرا» وو. ولے داسے معلومیږی چه په ابتداکښې په آریائی قبائیلو کښې اګنی (اور) د رب النوع (دیوتا) په حیثیت معروف نهٔ وو. د دے قیاس مرسته د دے نه کیږی چه د بوغاز کولئ (ایشیائے کوچک) په کتباتو کښې (سـ۱۴۰۰ـ ق.م) ایندرا خو د رب النوع په ډول ذکر شوے دے. ولے د اګنی ذکر پکښې نشته. په دے ډول د وادئ سنده په ابتدائی تهذیب کښې به هم د اور عبادت نه کیدلو. ولے د هندی قبائیلو یوه معروفه قبیله «بهاراته» د اګنی (اور) عبادت ته په خصوصیت سره مائله ده. د دے نه دا قیاس مرسته مومی چه د خپل اصل ټاټوبی نه د خوریدو نه پس د آریائی قبائیلو په اعتقاداتو

کښې بیا فرق راغلو - او نوی نوی ارباب الانواع ئې هم خپل کړل - بهرحال ایندرا دهندی آریاؤ محبوب رب النوع وو او ټولو هندی آریاؤ به یې عبادت کولو - دا هندی آرین یا دا یندرا عبادت گزار په دوو مهمو ډلو کښې تقسیم وو - په یو ډله کښې بهاراته او د دوی اتحادی قبائیل شامل وو - او په بله ډله کښې پنځه قبائیل شامل وو چه نومونه ئې په دے ډول دی - (۱) یادو (YADUS) - (۲) تور واشا (TURVASAS) - (۳) دروهیو (DRUHYUS) - (۴) انو (ANUS) - (۵) پورو (PHRUS) - دا پنځه واړه قبیلے به د "پنکه جانا" په نامه هم یادیدلے - دا دواړه ډلے په خپل مینځ کښې د یو بل سخته مخالف وے. او په خپل مینځ کښې به ئې شدید جنگونه کول - چه په هغې کښې دوه جنگونه دپښتون د تاریخ سره تعلق لری - په دے جنگونو کښې یو جنگ ته دارغنداب دمنطقې جنگ ویئلے شی - او بل جنگ ته دلسو ملکانو جنگ - دلسو ملکانو داجنگ دپښتون د تاریخي څیړنے دپاره لوئے اهمیت لری - ځکه چه په دے جنگ کښې د هغه ټولو قبیلو نومونه ذکردی - کومو چه په دے جنگ کښې حصه اخستی وه -

لکه چه اوو ئیلے شول د هندی آریاؤ د یوے ډلے مهمه او معروفه قبیله د "بهاراته" په نوم یادیدله - دا قبیله او د دوی اتحادی قبیلے په ابتدا کښې د خپلے مخالفے ډلے (یادوگروپ) په مقابله کښې ډیرے کمزورے وے - په "بهاراته" اولس کښې د تریستو قبیله شاهی قبیله وه - په دے قبیله کښې "دیواداسا" نوے یو راجا وو چه دخپلو مخالفو آریائی قبائیلو سره دجنگونو په وجه معروف دے - دارغنداب په منطقه کښې چه کوم جنگ شوے وو - ددے جنگ تفصیل به وروستو بیان شی -

**دلسو ملکانو جنگ :-** داجنگ د راوی سیند په غاړه شوے وو- په یو طرف بهاراته او ددوی اتحادی قبائیل وو او په بل لور د دوی مخالف یادوگروپ (پنکه جانا) او دهغوی اتحادی قبائیل - دغه وخت کښې د بهاراته قبیلے په ذیلی څانگه "تریستو" کښې "سوداس" نوے یو بادشاه وو - چه د "دیواداسا" ځوئے یا نمسے وو - ددے جنگ ظاهری وجه داوه چه د دے "سوداس" یو وزیر او صلاح کار وو - چه "ویسو مترا" نومیده - او د "کوزیکا" دعلمی کورنۍ یو غړے وو - دا سړے یو ښه مدبر، عالم او ویونکے وو - او خلقو به یې خبرو ته غوږ نیولو - دیسو مترا دخپل باچا سره د وپاش او ستردو (بیاس - ستلج) په جنگونو کښې ډیره مرسته کړی وه - او ددهٔ په همت او تدبر داعلاقے فتح شوی وے - ولے داسے معلومیږی چه دا فتوحات یا خو عارضی ثابت شوی وو - او یا بادشاه ددے خپل

وزیر په کارکردګی مطمئن نهٔ وو. ددے نتیجه دا شوه چه بادشاه هغه معزول کړو. او دهغهٔ په ځائے یو بل سړے چه ،،واسشتا،، ( VASISHTHA ) نومیدهٔ - او د بهارا د راجادعلی کورنئ سره یے تعلق لرلو - مذهبی رهنما او تاکلو[1] - په دے خبره سابق وزیر یا مذهبی رهنما ویسو مترا سخت خفه شو - او د سوداس نه یے د بدل اخستو اراده اوکړه.

دا سړے چونکه ډیر خوله ور او خوږ ژبانه وو - او خلق یے په خپله پړه جمنه راآړولے شول نو دے د بهاراته ډلے مخالف فریق ( یادو ګروپ ) ته په نتواتے لاړ - او د هغوی نه یے د بهاراته په مقابله کښے د مرستے خواست اوکړو - یادو ګروپ چونکه د بهاراته ګروپ شدید مخالف وو - نو هغوی د ویسو مترا په مرسته کښے د سوداس سره جنګ ته تیار شول او د شمال مغربی علاقو نورو آریائی قبائیلو نه چه د دوی اتحادیان او مرستیال وو هم مرسته اوغوښتله - په دے ډول د پنکه جانا ( یادو ګروپ ) امداد ته پنځه نورآریائی قبیلے هم راغلے. دغه شان یو طرفته د بهاراته قبیلے بادشاه سوداش او د هغهٔ اتحادی قبائیل وو. او په بل لور د ویسو مترا په مرسته کښے لس قبیلے یا لس بادشاهان وو او لکه چه وئیلے شوی دی - دا جنګ د راوی سیند په غاړه شوے وو -

په دے جنګ کښے د بهاراته قبیلے باچا سوداس او د هغهٔ اتحادی قبائیل بریالی شول. او د ویسو مترا په مرسته کښے جنګیدونکی لسو قبائیلو سخت شکست اوموندلو - دا یو خونړے جنګ وو - او د ویسو مترا د پره دارو قبائیلو طاقت ته یے لویه صدمه اورسوله - او دا سے معلومیږی چه د دے نه پس د سوداس او د هغهٔ د قبیلے طاقت ورځ په ورځ په زیاتیدو شو - او د هند په لور د آریائی قبائیلو ټګ راټګ هم بند شو -

کوم لس قبیلے چه په دے جنګ کښے د ویسو مترا په مرسته کښے جنګیدلے وے هغه دوه ډلے وے - یوه ډله د هندی آریاؤ وه - چه پخپلو کښے د بهاراتا اولس په مخالفت کښے متحد وه. او د ،پنکه جانا، په نوم مشهوره وه - او بله ډله د اباسیند نه په قبله په شمال غربی علاقو کښے په مختلفو خطو کښے استوګنه وه - ددے لسو وړو قبائیلو نومونه په دے ډول دی :-

١ - اوله ډله - پنکه جانا ( پنځه اولسه یا قبیلے )

(١) یادو (YADUS) -(٢) تورواشا(TURVASAS) - دا دواړه قبیلے په خپلو کښے ډیرے متحدے وے او د بهاراته قبیلے شدید مخالف وو - او دا سے معلومیږی چه په ابتدا کښے دوی خپل فتوحات

---

[1] د رګ ویدا مطابق واسشتا چه د ،، تریستو ،، قبیلے مذهبی پیشوا او تاکلے شو نو دا خلق ډیرشته من او دا قتدارخاوندان شول.

داوده علاقه غزولی وو -

(۳) درهیو (DRUHYUS) داخلق دګندهاریانو سره څنګ او سیدل او دګندهاریانو اتحادیان وو - (۴) انو (ANUS) دا اولس د « رهیو » قبیلے سره مربوط او د هخوی ګوانډیان وو - (۵) پورو (PUROS) - دا قبیله د خپلو د شمنانو بهاراته سره د سراسواتی سیند په غاړه استوګنه وه - اګرچه ځنے محققین د دوی استوګنه په مغربی پنجاب کښے ګنی -

ب - دویمه دله - داباسیند د قبلیزے غاړے قبائیل -

(۶) شیوا (SIVAS یا CHIVAS) - د دره کابل اوسیدونکی -

(۷) پکتها (PAKTHAS) - پښتانهٔ - دکرومو او ګوماتی ددرو استوګن -

(۸) الینا (ALINAS) - د نورستان یا پخوانی کافرستان خلق -

(۹) بهالانا (BAHALANA) - د دره بولان استوګن -

(۱۰) ویشانن (VISANAN) دګندهارا د خطے استوګن -

په دے لسو قبیلو کښے زمونږ غرض د « پکتهه » سره دے - د رګ وید دغه پکتهه اواوسنے پښتون یو لفظ دے - چه مطابقت به ئے وروستو اوشی - د رګ وید د دے حوالے نه دا معلومیږی چه د پښتون اولس د سنه کال ق - م نه لا آګاهو په دغه خپله نامه او خپله زمکه موجود وو - او د آریائی قبائیلو په جرګه کښے دځرګند نوم نشان خاوند وو -

د لسو قبیلو د دے جنګ نه علاوه په نورو ځایونو کښے هم د « پکتها » ذکر په رګ ویدا کښے راغلے دے - دالفظ کله د بادشاه د پاره او کلهٔ قوم د پاره استعمال شوے دے. هغه فقرے چه دا لفظ (پکتها) پکښے استعمال شوے دے داسے دی:

(۱) برګیوس (BHARIGUS) او درهیوس (DRUHYUS) زرغوږ او نیوو - یو دوست بل دوست ته د دووړ لرے قبیلو په مینځ کښے خلاصے ورکړو - د « پکهت » « بهالانا » او « ویشانن » خلق سره راټول شول - " آریائی ملګری « لاړ بنووڼی » ته او د « تریستو » قبیلے ته راغلل - د دوئ دا راتلل له دے کبله وو - چه دوی د جنګ سره مینه لرله. (د رګ وید ترجمه - دوهم ټوک - ۱۸ - مخ - اومه برخه - ۱۷ - سندره) - د دے سندرے نه دا معلومیږی چه پکتها (پښتانهٔ) او ورسره دا نور قبائیل په یو جنګ کښے ملګری وو. زما په خیال کښے د « لاړ بنوونی » نه مراد هم هغه ویسو مترا دے - او په دے جنګ کښے د « راوی جنګ » ته اشاره ده -

(۲) اے اسونانو ! په خپلو جنګی ګاډو (رتهونو) سوارهٔ شئ - په خپل زرین تخت کښینئ

اے هغه خلقو چه تاسو ډیر دولت مند یئ ـ هغه مرستے چه تاسو د « پکتها او ادرنګو » سره اوکړے نو « بابهیرو » د خپلو دوستانو نه بیل شو ـ اے د سعر ستورو تا دی اوکړئ او زرراشئ او کوم تکیف او ضرر چه پیښ شوے دے ـ د هغے تا بیا اوکړئ (د رګ وید ترجمه مخ ۱۵۳ ا تمه برخه ـ ۲۲ سندره) په دے سندره کښے د « پکتها » نه مراد د پکتهه اولس سردار دے ـ په دے ډول اورنګو او بابهیرو هم د سردارانو نومونه دی ـ په سندره کښے شاعر د کوم جنګ بیان کړے دے ـ او د « پکتهه » او « ادرنګو » د پاره د « اسونانو »[1] نه مرستے غوښتنه کړی ده ـ

(۳) اے اندرا ته ډیر لوئے یئ ـ له تا څخه خواست کوم چه مونږ ته پیورے غواګانے راکړه. لکه « مده بائ تیا » او « نی پائ تیا » (دوه شهزادګان دی) ته چه د ورکړی دی هغه شان چه د کتوا تهر او د تراسا داسیو شهزاده[2] او « پکتهه » او داساورجه ته د ورکړی دی[3] ـ په دے سندره کښے شاعر د « اندرا » څخه پیورے غواګانے غواړی ـ غواګانو په آریائی تهذیب کښے ډیر اهمیت لرلو ـ او د غواګانو د ډیر والی او دولت مندئ په مثال کښے د نوروشته منو او دولت مندو سره د « پکتهه » نوم هم اخلی ـ

(۴) د رګ وید په یو بل ځائے کښے د پکتهه ذکر داسے شوے دے :ـ

« هغه ډیر ښهٔ سندرغاړی ـ د جنګ په تږ د والی کښے دا دعا اووئیله ـ (ځکه) چه په جنګ کښے په اسونانو برے او موی ـ هغه وخت چه خورا سخی رب النوع (اندرا) د پکهت مور پلار او ژغورل نو په اوو هوتاګانو[4] یرغل اوکړو ـ شیاوانا د ښکلو سوغاتونو ورانده کولو په غرض هغه مذبح په ډیرو خوشبودارو څیزونو سمبال کړو ـ « توریاوانا » (چه د ټولو موجوداتو نه ښکلے آواز لری ـ) د نذار مشروبات د سیلاب په څیر او بهیول چه زمکه زرغونه او او بهٔ کړی » (ترجمه ـ دویم ټوک ـ مخ ۷۶۵ ـ لسمه برخه ۶۱ ـ سندره)

دمشهور وید پوهان پیشل (PICHEL) په قول « توریاوانا » د پکهت (پښتنو)

---

[1] اسون د سحر ستوری رب النوع ـ

[2] تراسا داسیو ـ د پورو قبیلے د یو باچا نوم وو ـ د دے لفظاً معنیٰ ده د داسیانو د پاره هیبت ـ

[3] د رګ وید ترجمه ـ دوهم ټوک ـ مخ ۲۶۰ ـ ا تمه برخه ـ ا ـ سندره ـ

[4] هغه عالمان او مذهبی پیشوایان چه د قربانئ رسومات به ئے ادا کول ـ

د باچا نوم دے ۔ او " شیاوانا " د یو پښوانی شاعرځوئے وو ۔ د دے دواړو ترمینځه مخالفت پیدا شوے دے ۔ د سرود نه دا معلومیږی چه د شاعر د قبیلے او د پښتنو ترمینځه په څه خبره جنګ جوړ شوے دے ۔ شاعر دا سون عقیدت مند دے ۔ او د خپل رب النوع د خوشحالولو د پاره یئے مذبح په خوشبو داره څیزونو ښهٔ سمبال کړے دے ۔ چه په پکتها (پښتنو) بریالے شی ۔ ولے اندرا چه د پکهت قبیلے طرفدار وو ۔ د شاعر قربانی ماتله کړه ۔ او هغه بامبړن (هوتاکان) چه قربانیٔ به د هغوی په ذریعه اجرا کیدلے ۔ او زغلول ۔ د دے نه پس " توریاوانا " د خپل رب النوع (اندرا) د خوشحالولو په غرض مشروبات د سیلاب په دود او بهیول ۔ چه په د ښمن بریالے شی ۔

غرض د رګ ویدا په دے حوالو کښے موږ د پکتها ذکر په واضح د ول اولیدلو ۔ د رګ ویدا په سند روکښے د پکتها ذکر په دومره تفصیل سره په دے دلالت کوی چه "پکتها" (پښتانهٔ) د آریائی قبائیلو په جرګه کښے یو سترګه وره او د نوم ناموس قبیله وه ۔ د " پکتها " نه علاوه څنې نورے قبیلے هم دی چه د هغوی نومونه په رګ ویدا کښے موجود دی ۔ او دا سے معلومیږی چه د پښتنو دا قبائیل هغه وخت هم په دے خپلو علاقو او په دے خپلو نامو موجود وو ۔ د ارغنداب په منطقه کښے د بهاراتا قبیلے د یو بادشاه " دیوا داسا " کوم جنګ ته چه وړاندے اشاره شوی ده ۔ دا قبیلے په هغه جنګ کښے شاملے وے ۔ د دے قبائیلو نامے دا دی ۔ ډاسا، پانی، بریسایا، پاراواتا ۔

دا جنګ د سراسواتی سیند په غاړه شوے وو ۔ چه د مستشرق هیلبرانټ د قول مطابق دا سیند د ارغنداب سیند دے ۔ چه په اوستا کښے د هراویتی په نامه ذکر شوے دے ۔ دا مستشرق وائی چه په دے جنګ کښے د اراکوزیا (اوسنی قندهار خطه) خلق شامل وو ۔ د دے قبائیلو نومونو ته چه موږ ګورو نو دا سے معلومیږی چه د ویدا پاراواته قبیله به هغه قبیله وه چه بطلیموس یونانی د ارغنداب په ورشوګانو د "پاروئتی" په نامه ذکر کړی ده ۔ د غه شان د " ډاسا " په نامه هم په پښتنو کښے څنې قبائیل موجود دی ۔ لکه چه په سلیمان خیلو کښے د " ډاسو " په نامه یوه قبیله موجوده ده ۔ د غه شان د ویدی زمانے " پانی " اوس په " پنی یا پینی " مشهور دی ۔ چه په سیویٔ کښے د ډاډر شمال ته اوسی ۔ او شجره نویسو په کاکړو کښے ګڼلی کړی دی ۔ هم په دے ډول د بریسایا او بړیڅ ترمینځ معمولی فرق دے ۔ او دا اوسنی بړیڅ هم هغه خلق دی چه په ویدی عصر کښے د بریسایا په نامه یادیدل ۔ د دے خلقو استوګنه د قندهار په

شوراوک کښې ده. او ددې علاقې په سوېلي غاړو کښې ان ترهلمنده خوارهٔ دی. دغه شان د وید «پاراواتا» او د بطلیموس پاروتي تراوسه په پښتنو کښې د «پروت» په نامه په الکوزو کښې یوه څانگه ده. اوچونکه الکوزي هم د اراکوزي استوگن دی نو په دغه پروت کښې د هغه زړې کلمې پاراواتا ریشه موجوده گڼلې شو.

د رگ ویدا په پورتنو حوالو کښې د آریائی قبائیلو په لړکښې موږ د «پکهت» او «پکتها» په نامه یوه مقتدره قبیله اولیدله. دغه شان د ارغنداب په منطقه کښې د پښتنو د څنې نورو قبائیلو نامې هم راته معلومې شوې. چه د هغوی د نومونو تطبیق د څنې اوسنو پښتنو قبائیلو نومونو سره کیږی.

اوس به د پښتنو نامه د آریاؤ په یو بل مذهبي کتاب کښې اولټوو:-

د باختر د علاقې نه چه د آریائی قبائیلو څنې مهمو ډلو (هندی او ایرانی) هجرت اوکړو. نو د زمانې په تیریدلو سره د باختر د استوگنو آریائی خلقو په ژبه، آئین او معتقداتو کښې د مختلفو مقتضیاتو د اثر لاندې هم څه لږه ډیره تبدیلي راغله. او په دې خطه کښې یو نوی ژبه پیدا شوه چه اوس ورله (زند) وئیلې شي. او د باختری آریاؤ مذهبي کتاب «اوستا» په دې ژبه کښې لیکلې وو. د اوستا د لیکلو تاکلي نیټه هم معلومه نهٔ ده. البته د پوهانو په خیال کښې د دې کتاب د تالیف زمانه د ۱۰۰۰ ق.م او ۶۰۰ ق.م په مینځ مینځ کښې گڼلې شي. په دې کتاب کښې په واضح ډول د پښتون په حقله څه ذکر نشته. البته په دې کتاب کښې (بلخ) د بخدی په لفظ ضبط دې. داکثرو پوهانو دا خیال دې چه د دې ښار دا نوم (بخدی) د خپلو استوگنو بخد په نامه بخدی مشهور شوې دې، د دوی په خیال کښې د وید «پکهت» او د «اوستا» «بخد» په اصل کښې یو لفظ دې. په دې ډول چه «پ» په «ب» اوړی. «ک» په «خ» او «ت» په «د» اوړی نو د وید پکهت، د اوستا بخت شوې دې. او چونکه خ په ښ اوړی نو د وید پکت، بخت، بخت = پښت شو یعنی دا نوم (بخد) د دې خلقو (پښتنو) په باختری لهجه کښې یو زوړ نوم دې.

**یوناني مؤرخین**:- د وید او اوستائی زمانې نه پس د یوناني مؤرخ هیرودوټس په لیکنو کښې موږ په واضح ډول د پښتون ذکر لیدلې شو. د دې بناغلي مؤرخ اگرچه د پښتنو په حقله یو څو جملې لیکلې دی. ولې د دې لنډو او مختصرو جملو نه ډیرې اهمې او بنیادی خبرې معلومیږی. د دې مؤرخ په لیکنو کښې د پښتنو نوم او د دوئ د وطن نامه څو ځایه راغلې ده. دا بناغلي مؤرخ پښتون قام د پکتویس، پکتوان په نوم او د دوی د وطن نوم د پکتیکا،

پکتیکې، په الفاظو ذکر کوی۔ او ددے نوموړنو نه علاوه د دے خلقو دعرف وعادات، لباس اووسلو په حقله هم ذکر کوی۔ او داسے وائی چه دے خلقو (پښتنو) به دڅرمنے جامے (پوستینونه) اغوستلے ۔ غشی، لیندے او پیش قوزے به یے لرلے ۔ او په جامه، زیست روزګار او دژوند په لارو چارو کښے بید و دباختریانو په شان وو۔ ددوی د رئیس نامه ارتینت (ARTHYNTE) وو چه د ایتها منز (ATHAMATRE) خوځے وو۔

د هیرو دوټس ددے حوالے نه چه کومه اهمه خبره معلومیږی۔ هغه د پښتنو او باختریانو ترمینځه دلباس، وسلے او د ژوند په لارو چارو کښے مشابهت او یکسانیت دے۔ او دا ددے قیاس مرسته کوی چه داخلق (پښتانهٔ) او دباختر خلق تر ډیرے مودے یو ځائے استوګن پاتے شوی دی۔ او دیوقسم تهذیب او تمدن خاوندان وو۔ د هیرو دوټس دلیکنو نه دا هم معلومیږی چه په "پکتیکا" کښے څلور قبیلے آبادے وے چه د هغوئ نومونه دا دی۔

(۱) ګند هاریان، (۲) اپاریتی، (۳) ستاګیدی، (۴) دادیکی۔

(۱) **ګندهاریان** :۔ دا خو ظاهره ده۔ چه ګندهاریان به دګندهارا استوګن وو۔ او ګندهارا دوادئ پښور زوړ نوم دے۔ نو دهیرو دوټس په حواله کښے ذکر شوی ګندهاریان به هم هغه خلق ووکوم چه په دے علاقه کښے دویدی زمانے نه استوګن وو۔ او ذکریئے په رګ ویدا او دهندرا په نورو کتابونو کښے شوے دے۔

(۲) **اپاریتی** :۔ دځنے عالمانو داخیال دے چه داخلق د سپین غرهٔ په جنوبی لمنو کښے اوسیدل۔ ځنے عالمان ددے لفظ معنیٰ دغرهٔ اوسیدونکی کوی۔ دمسټر بیلو په خیال کښے داخلق او دپښتنو موجوده آفریدی قبائیل یو خلق دے۔ او داخیال درست معلومیږی۔ داپاریتی او "اپریدی" مطابقت د فقه اللغت له مخه څرګند دے۔

په "اپاریتی" کښے : مینځ (الف) دعلت حرف دے او امکان لری چه په وروستو زمانه کښے به دا استعمال نه وتلے وی۔ او د "اپاریتی"، نه به "اپریدی" جوړ شوے وی۔ د (ت) او (د) ابدال عام دے۔ نو (ت) به په (د) بدله شوی وی۔ او د "اپریتی"، نه به "اپریدی" شوے وی۔ دا خبره هم دفکر وړده۔ چه دپښتنو په ځنو (الف، با) کښے (ف) نشته. او اکثر پښتانهٔ د (ف) تلفظ نهٔ شی کولے۔ او د (ف) په ځائے (پ) استعمالوی۔ ددے نه علاوه پښتانهٔ په خپل مینځ کښے دے مشهورے قبیلے ته "اپریدی"، وائی نهٔ افریدی۔ دا لفظ (افریدی) دوروستئ زمانے او د شجره نویسوله خوا شروع شوے دے۔

(۳) **ستاګیدی** :۔ په یقینی ډول ددے خلقو شناخت او تعین نهٔ دے شوے۔

بناغلی احمد علی کهزاد په خپل تاریخ افغانستان جلد اول کښې د دے قام په حقله داسے وائی چه دا خلق "ستاګیدی" د پښتونخوا یو زوړ او ښوانے قام دے. او یوائے دا نه چه هیرو ډوټس او بطلیموس د دوی ذکرکړے دے. بلکه عیلا میا نو (ELAMIS) او بابلیانو هم دا خلق د "ستاګوی" او "ستګوسو" په الفاظو یادکړی دی. د مستشرق برتلو په خیال کښې دا خلق د پارو پامیزاو هیرمند د منطقے په هغه علاقه کښې اوسیدل چه نن پکښې غزنے آباد دے. مستشرق راولسن د دے خیال اظهارکوی چه د افغانستان هغه لوړه غرڅیزه علاقه چه د کابل څخه د هرات پورے او د "سرپل" نه تر هلمند ترغاړے خوره ده. دا خلق په هغ کښې میشته وو. دغه مستشرق وائی چه دالفظ دوه ټلیے لری. یعنی ستا یاست چه معنیٰ ئے سل ده. او (۲) ګیدی یا ګوسو. چه په معنیٰ د غوا ده. نو د ټول لفظ معنیٰ شوه. د سلو غواګانو مالکان. د مسټر بیلو په خیال کښے د "ستاګیدی" نه مراد "خټک" دے. او څښے نورعالمان داسے هم شته چه هغوی ئے د "شیټک" سره سمون راولی. د برتلو په قول دوی جامو کښې د ګندهاریانو په شان ؤو. د بدن پورتنۍ حصه او ورونو نه به ئے اکثر بربنړ پربینودل. د دوی تورے به اکثر ینغے او وړے وړے وے. او په کیڼ ډوډ ی پورے به ئے اویزا ندے کړے وے.

(۴) **دادیکیان**:- د دے قام شناخت او تعین په اصلی ډول نۀ دے شوے او نۀ د هیرو ډوټس نه بغیر په دے نامه بل کوم مؤرخ د دے قام ذکرکړے دے. البته "استرابو" د "دردی" او بطلیموس د "دارا دری" (DARA - DARIE) یا دارندی په نامه د یو قام نوم اخلی. احتمال لری چه د هیرو ډوټس "دادیکی" او د دے مؤرخینو دا ذکرکړے نامے د یو قام نامے وے. به هرحال په وثوق سره څۀ نشی ویلے کیدے. بطلیموس د "داراندی" قام دا ستوګنے علاقه د ارغنداب او هرات ترمینځه ګڼي. او داسے وائی چه د هرات په لوری داراندی (DARANDI) او دارغنداب په لوری بلختریان اباد وی. او د دوی ترمینځه علاقه د "تاتاکنه" په نوم یادیږی. "راولنسن" وائی چه ممکنه ده چه د بطلیموس په وخت کښې دے خلقو دغې علاقو ته هجرت کړے وی. ولے د دوی داستوګنے مرکه دغزنی د خوااو شا علاقه، یا د پارو

---

ل هیرو ډوټس هم دادیکیان او ستاګیدیان په جامه او وسله کښې دګند هاریانو شان یاددی.

پامیر په لمنو کښې چرته یو ځمکه وه - او دوی به د ګندهاریانو ګوانډیان وو -

ددې قام څېړله ښاغلی احمد علي کهزاد وائي چه دغه دادیک چه یونانیانو او لاطیني مورخینو یې ذکر کړے دے - د آریائي قبائیلو یو څوانے ښاخ دے چه اوس ورته تاجیک وئیلے شي - "دادیک" د (ژند) په ژبه کښې د "داکیو" (DAQYU) په لفظ ذکر شوے دے - ددے لفظ معنی ده، د کرکیلے کارکوونکے، د دهقان کلمه د داکیرنه پیدا شوې ده - او د دهقان د اسلامي دورے په اوله کښې د بزرګۍ، عزت او شرافت یو لوئے عنوان ګڼلے شي - د برتلو په قول د دادیکیانو وسلے د ګندهاریانو په شان وے -

هیرودوټس نه علاوه یو بل یوناني مورخ بطلیموس کلادیوس د پښتنو وطن د پکتیَن په نامه یاد کړے دے - دے وائي چه پکتیَن د پارو پامیز جنوب ته دے - او دا علاقه د پکتیانو وطن دے - پس د دے تفصیلاتو په رڼا کښې دا معلومه شوه چه د وید "پکتها او پهکت" د "اوستا" باختري او بختري، بخدهم هغه لفظونه دي چه یوناني مؤرخینو د خپلے لهجے مطابق د پکتوان او پکتویس په لفظونو او د دوی وطن ئے د پکتیکا، پکتیکے او پکتین په لفظونو یاد کړے دے - دا خبره هم د فکرور ده چه په ویدي ژبه کښې به د "پکهت" (ک) په دا سے توری لیکلے شو چه د پښتنو دا موجوده تورے (ښ) د هغځائے نیولے شي - او د دے توری آواز به د (خ) او (ش) ترمینځه مینځه وو - له دے کبله هیرودوټس او نورو یوناني لیکوالو د ویدي زمانے د دے لفظ اصلي تلفظ خو اوریدلے دے ولے په خپلو لیکنو کښې ئے د خپلے لهجے مطابق لیکلے دے - په دے بنا دا لفظ په اصل کښې پښت دے چه په فارسي رسم الخط کښې ئے یو شکل بخت او بل پشت کیدے شي، او د دے قاعدے مطابق د پکتیکا نه پښتیخا جوړیږي -

اوس که یو ځل بیا د دے ټول بحث جاج واخلو نو موږ ته دا خبرے معلومے شوے:

(۱) آریائي قبائیل دانسانانو د سپین نسل خلق وو - چه د اکثرو عالمانو په خیال کښې د رود آمو او سیر دریاب ترمینځه علاقه کښې په ډیر قدیمه زمانه کښې آباد وو - چه ورو ستو د خوراک د تنګسیا نه او یا په بل څه سبب د دے علاقے نه په هجرت مجبوره شول - او د باختر علاقے ته راغلل -

(۲) د ۲۰۰۰ ق-م په خوا او شا کښې د آبادئ د ډیروالي له کبله د باختر ځمکے هم په دوی تنګے شوے او د دے خلقو ځنې قبائیل د دے علاقے نه په هجرت مجبور شول -

(۳) د دے خلقو دوه لوئے ډلے د باختر نه او کوچیدلے - یوه ډله د هند په لور

روانه شوه، په اباسیند پورې وتله او د پنجاب ځمکې ته اونیوله - او بله ډله د پارس په میرو کښې خوره شوه - او د دې ډلې ځنې قبیلې د یورپ په لور روانې شوې -

(۴) هندي آریاؤ ته ډیر زر موزون ماحول په لاس ورغلو او ډیر زر یې د سند ده او ګنګا جمنا په میدانونو کښې لوی لوی ریاستونه او راجوارې قائمې کړې - دې خلقو به ځان ته آرین وئیل - یعنی اصیل او شریف - او ملکي خلقو ته به یې داس یا داسیو وئیلو او د هغوی نه به یې نفرت کولو - او خپل نسل او وینه به یې د هغوی ګډون نه محفوظه ساتله.

(۵) د دې خلقو ایراني ډلې دومره زر ترقي اونه کړه - ځکه چه د فارس او عراق په مرکه د سامیانو عظیم الشان سلطنتونه موجود وو - او د هغوی په مقابله کښې دا خلق تر ډیرې مودې بې اهمیته وو -

(۶) د دې خلقو یورپي ښاخ تر موده و موده د خانه بدوشۍ ژوند تیرولو -

(۷) د باختر د مرکې نه چه د دې خلقو دوه مهمې ډلې اوکوچیدلې نو نورو قبیلو ته ملک او زګار شو او دوی هم مخ په وړاندې اوغزیدل -

(۸) د باختري آریاؤ ځنې قبیلې د هندوکش په شمالي او جنوبي لمنو کښې خورې شوې او د اباسیند د مغربي غاړې پورې مرکې یې اونیولې - په دې قبیلو کښې ځنې قبیلې هغه وې چه د لسو ملکانو په جنګ کښې یې ذکر شوې دې -

(۹) په دې لسو قبائیلو کښې یوه مهمه قبیله د "پکهت" وه - دا "پکهت" د اوسني پښتون پخوانې نوم دې - صرف د ژبې او لهجې اختلاف لري -

(۱۰) د پکهت ځنې څانګې په باختر کښې پاتې وې - د زمانې په تیریدو سره د دې خلقو په عقائدو ژبه او لهجه کښې هم فرق پیدا شو - د دې خلقو د باختر په ځمکه به خپل نوم (بخد) یو ښار آباد کړو چه په اوستا کښې د بخدي په لفظ یاد شوې دې - او مراد تری نه بلخ دې -

(۱۱) د باختري بخدیانو (پښتنو) یوه څانګه د پارت په نامه مشهوره ده - د دې قبیلې یو مشر ارساس پارتي په دریمه صدۍ ق.م کښې د هري رود د غربي خوا نه د خزر تر غاړو پورې علاقه اونیوله - او دلته یې خپل سلطنت قائم کړو -

(۱۲) پکهت، بخد، په هخامنشي دوره کښې د یوناني مؤرخ هیرو ډوټس په لیکنو کښې د پکتویس او پکتوان په الفاظو ذکر شوي دي - او د دوي د استوګنې علاقه د پکتیکا، پکتیکې په الفاظو ضبط شوې ده - نورو یوناني مؤرخینو هم دا علاقه د پکتین په لفظ یاده کړې ده - او د دې علاقې استوګن یې د پکتیانو په نوم بللي دي - دا ټول لفظونه یعنې پکتویس، پکتوان، پکتیان، پکتیکې او پکتین د فقه اللغت له مخه د پښتون، پښتنا (پښتونخوا) سره مطابقت لري - د دې نه دا څرګندېږي چه دا

ویدی (۱)او ستاڼ، او د یونانی مؤرخینو ذکرکړی ټول لفظونه د «پښتون» د پاره استعمال شوی دی۔ او دا خلق د آریائی قبائیلو یوه څانګه وه۔

(۱۳) په پکتیکا کښې د هیرو دوټس مطابق څلور قبائیل آباد وو۔ یعنی (۱) ګندهاریان (ګندهارا، وادئ پېښور استوګن) -(۲) اپاریتی (اپریدی) -(۳) ستاګیدی (خټک او شیتک) (۴) دادیکی ۔ دا هم هغه خلق وو چه د هغوی اخلاف تراوسه پورے په پکتیکا (پښتیخا) کښې آباد دی۔ او پښتانه بللے شی ۔

**پښتو ژبه** : د قامونو ترمینځه د نسلی اشتراک او اتحاد یو څرګنده علامه د هغه قومونو په ژبو کښې نزدیکیت او مشابهت هم ګڼلے شی۔ یعنی د کومو قامونو ژبے چه په خپل مینځ کښې په بوده تنسته کښې نزدیکیت او یکسانیت لری هغه د یوکورنئ ژبے ګڼلے شی۔ او د هغ ویونکی قامونه د یو نسل خلق نسل شمیرلے شی۔ د پښتو ژبے په باب کښې د اوسنئ زمانے د ژبپوهانو او عالمانو د څیړنے او تحقیقاتو په نتیجه کښې دا خبره منلی شوی ده چه پښتو ژبه د ژبو په کورنئ کښې په آریائی ډله کښې شامله ده۔

د ژبپوهانو خیال دے چه آریائی قبائیل د خپلو خوریدو نه اول په یو ځائے استوګن وو۔ او د دوی مذهب او ژبه یوه وه۔ د آریائی قامونو دا وړومبئ ژبه چه ډاکټر لیبان ئے د «آریک» په نامه یادوی۔ اوس بیخی ورکه ده،او هیڅ سراغ او درک ئے نه لګی۔ البته د عالمانو د تحقیقاتو په نتیجه کښې دا خبره ثابته شوی ده چه د دے اولنئ اصلی اریائی ژبے الفاظ او کلمات په ټولو آریائی ژبو کښې مشترک دی۔ د ژبپوهانو خیال دے چه د ۲۵۰۰ ق-م په خوا و شا کښې لا د آریائی اقوامو ژبه او ارباب الانواع وو۔ وروستو چه دوی د خپل اصلی ټاټوبی نه او کوچیدل۔ او د دوی څنے بناخونه د یورپ په لوری او څنے د ایران و هند په لورخوارهٔ شول۔ نو څنے آریا په باختر کښې هم پاتے شول۔ د غه وخت یعنی د هجرت او کوچ نه پس د دے خلقو ژبے هم بیلے بیلے شوے۔ د دے خبرے ثبوت د ړګ وید او آثار قدیمه شهادتونه موجود دی۔

هندی آرین چه د پنجاب په زمکو میشته شول۔نو دغه وخت ئے خپل یو مذهبی کتاب (ړګ وید) په خپله ژبه کښې اولیکلو۔ د دے کتاب د لیکلو د زمانے په آئین کښې د ویدپوهانو ترمینځه اختلاف دے۔ ولے اکثرو عالمانو په خیال کښې داکتاب د دوه زره ق-م د نیمے په خوا و شا کښې لیکلے شوے معلومیږی۔ بل طرف ته دانا طولیه د آریائی قبائیلو کوم لیکنونه چه د بوغاز کوئے (BOGHAZ KOE) نه راوتلی دی۔ د عالمانو په خیال کښې

دهغې د ليکلو نيټه د سنه ۱۴۰۰ ق.م خوا و شا ګڼلې شي -

که چرې د هندي آريانو د کتاب رګ ويدا او د بوغازکوئ د نوشتو مقابله اوکړې شي نو د دواړو ليکنو ژبې بيلې بيلې دي - ولې په دواړو کښې دا فرادو د نومونو اشتراک څرګند دے. لکه په مثال کښې د هتيتيانو ( د اناطوليه پخواني آريائي قبائيل ) په دے ليکنو کښې د دوی د شهزادګانو نامے ارتيتما (ARTATMA ) تسرتا (TASRATTA ) سترنا (SUTTARNA) ليکلی دی - او دا نامے بلکل سوچه آريائي نومونه معلوميږي - په دغه نوشتو کښې چه د کومو ارباب الانواعو نومونه راغلي دي - هغه هم هغه شان دي - څه رنګ چه د هندي آريانو په کتاب رګ ويدا کښې ذکر دي. لکه ايندرا ( ANDRA ) - وارونا (VARUNA) - ناساتي(NA SATYA ) وغيره - دا خبره هم د فکر وړ ده چه د بوغازکوئ په نوشتو کښې د اګني ( داور ديوتا) ذکر نشته - حالانکه په رګ ويدا کښې اګني ديوتا ذکر دے - او د هندي آريانو معروفه قبيله بها راته د "اګني ديوتا" ډيره معتقده وه -

د بوغازکوئ د دے نوشتو نه علاوه چه د آريائي اقوامو د ژبې او مذهب يو والے څرګندوي - دا خبره د دے لاندے شهادت نه هم معلوميږي:

د سنه ۱۷۰۰ ق.م نه د سنه ۱۶۰۰ ق.م پورے د زاګروس ( او سنے کرمان ) په غرونو کښې کاسي نوے يو قام اوسيدو چه په بابل او عيلام ئے هم سلطنت کړے دے - د دے کاسيانو په ژبه کښې هم دغه رنګ کلمات راغلي دي - چه سوچه آريائي دي - لکه شورياس ( SHURYAS ) او مرتياس (MARTYAS ) چه په سنسکرت کښې سوريا ( SURIA - غر) او مروتاس ( MARUTAS) د باد رب النوع سره پوره پوره مطابقت لري - دغه شان سما يا ( د واوريزو غرونو ملکه ) د هماليه او زيبا ، هيما ( واوره ) د پخوانيو آريائي کلماتو سره تطبيق لري -

د کاميانو د دے نامو نه علاوه د ( سنه ۸۰۰ ق.م ) په خوا و شا کښې د آسوري باچا آسور باني پال (ASURABANIPALL ) په کتب خانه کښې د "اسيراميزاس" نوم ليدلے شي - چه بيدو د اوستا اهورا مزدا ( AHURA MUZDA ) معلوميږي - دا نوم په سنسکرت کښې آسورا(ASURA) او په اوستا کښې اهورا (AHURA) ضبط دے -

د دے تفصيل نه دا خبره واضح شوه چه د سنه ۱۴۰۰ ق.م نه وړاندے وړاندے آريائي اقوامو لا په ژبه او مذهبي عقائدو کښې اشتراک لرلو او وروستو بيا د دوئ ژبې د خپل خپل

---

لے کاسيان په پښتنو قبائيلو کښې يوه قبيله ده ، وئيلے شي چه کيسي غر ( کوه سليمان ) د دوی په نامه موسوم شوے دے -

جغرافیائی ماحول او ضروریاتو په اقتضا کښې بدلے شوے۔

د ژبپوهانو د تحقیق په نتیجه کښې دا خبره منلے شوے ده چه یو ژبه چه په څو نورو ژبو تقسیمیږی۔ یعنی نورے نورے څانګے ترینه بیلیږی۔ نو کم و زیات زرکاله موده پرے تیریږی۔ نو په دے حساب که د بوغازکوئ د ډیرلیکنو نه زرکاله پورته لاړ شو نو دا به اووایو چه د سنه ۳۲۰۰–۲۵۰۰ ق.م په خواوشا کښې د آریائی اقوامو ژبه لا یوه وه۔ او دغنے ژبپوهانو دا خیال دے چه دا ژبه د پارس او میډیا نه واخلے تر پنجابه ویلے کیده۔ او د آمو شمالی غاړے او سغدیانه پکښې هم شامله وه۔

د عمومی مهاجرت نه پس چه هرکله هندی آرین د پنجاب او هند په مزکو میشته شول نو وروستو د زمانے په تیریدو سره د دوئ ژبه په سنسکرت مشهوره ده۔ چه رګ ویدا په دے ژبه کښې لیک دے۔ هغه آریائی قبائیل چه د ایران په لور تلی وو۔ د هغوی ژبه په اوله کښې زړه فارسی وه۔ چه وروستو د هغے ځائے پهلوی ژبے او نیولو او بیا دا او سنئ فارسی د پهلوی په ځائے مروجه شوه۔ په دغه موده کښې د باختر په زمکه یوه بله ژبه پیدا شوه۔ چه اوس ئے ،،زند،، بولی، او د اوستا یوه برخه په دے ژبه کښې لیک ده۔ دا ژبه ،، زند ،، او پښتو په خپلو کښې ډیر نزدیکیت لری۔ او لکه چه د اکثرو ژبپوهانو خیال دے دا موجوده پښتو د زند یا د زند په شان د یوے بلے ژبے نه راوتلی ده۔

دا خبره د فکرورده چه څه رنګ پښتون قام ځوانے دے او موږ د رګ ویدا په حواله د دے قام سراغ د سنه ۱۲۰۰ ق.م په خواوشا کښې موندلے دے دغه رنګ پکار ده چه د دوی ژبه پکهتو (پښتو) هم ځوانئ وی۔ په اصل کښې دا لفظ (پښتو) خو د یوے ژبے نوم دے۔ ولے وروستو دے لفظ یو بل وسیع مفهوم هم پیدا کړو۔ چنانچه پښتانۀ ټول اجتماعی او روحی نظام د ،، پښتو ،، په نامه یادوی۔ او دا لفظ د دوی د قامی افتخار یو څرګنده نخښه ده۔ ولے څه رنګ چه تر ډیرے مودے د پښتون قام تاریخی حالات په تیارۀ کښې وو۔ دغه شان د دوی د ژبے د مخ نه هم چا پلو لرے کړے نۀ وو۔ تر دے چه تر نولسمے صدئ په آغاز کښې چه مغربی عالمانو د مشرقی اقوامو د تاریخ او ژبو پلټنه شروع کړه، نو په دے ضمن کښې څنے عالمانو پښتو ژبے ته هم توجه اوکړه۔ په دے عالمانو کښې پروفیسر کلپرته، پروفیسر ډورن، مسټر راورټي او مسټر بیلو وغیره ډیر مشهور دی۔ د دے عالمانو دا خیال دے چه پښتو ژبه د سامی ژبو سره هیڅ مطابقت نۀ لری۔ او دا ژبه د الفاظو د ساخت او ګرمری اصولو له مخه یوه آریائی ژبه ده۔

د پښتو ژبې پخقله چه کومو مستشرقینو خپل تحقیقات کړي دي په هغوکښې دځنو دخیالاتو خلاصه داسې ده:

فرانسیسی مستشرق مسټرجیمز" ډارمستهیټر" د پښتو ژبې په باب کښې دا نظریه لري - چه پښتو ژبه نه په هندي لهجوکښې شامله ده، او نهٔ د پارسئ او پهلوي نه پیدا شوي ده - بلکه دا ژبه د (زند) اوستائ ژبه یا د زند په شان د یو بلې ژبې نه راوتلې ده - یعني د مسټر ډارمستهیټر په خیال کښې پښتو ژبه داوستائي ژبې یو پاتې برخه ده - ځکه چه دا د زند سره ډیر قریبي مشابهت لري -

یو بل مستشرق مسټر" جي - اے ګریوسن " په لِنګوسټک سروے آف انډیا (LANGUESTIC SURVEY OF INDIA) کښې د پښتو په باب کښې په ډیر تفصیل سره بحث کوي. او داسې وائي چه د آریاؤ ډیرے قبیلې وے چنانچه د دارا یوش په یو ډبرلیک کښې دولس قبیلې ذکر دي - د دے ټولو قبیلوژبې جداجدا وے - د دارا یوش د ډبرلیک ژبه زړه فارسي ده چه په هغه وخت کښې به په فارس کښې وئیلې شوه - زړه فارسي او داوستا ژبه (زند) بیلې بیلې ژبې دي - داوستا ژبه په اصل کښې شرقي ده. او ډیرو پوهانو باختر ژبه ګڼلې ده - په دے بناځنې ژبې د فارسئ په ډله کښې ګڼلے شي - او غربي ورته وئیلے شي - او ځنې نورے په شرقي ډله کښې، ایراني او هندي دواړه ژبې د یوے ربښے نه او په خپلو کښې سره نزدے دي - خو وروستو د یوے بلے نه بیلې شوے دي - که داوستا ډیر زاړهٔ اجزا د رِګ ویدا سره مقابله کړے شي نو دا خبره ترینه معلومیدے شي - ولے چونکه ډیره زمانه تیره شوي ده، نو دا دواړه ژبې سره هم بیلې شوي دي - لیکن د هندو کش په جنوب او د هند په شمال غربي سرحد په خوا وشاکښې ځنې ژبې لکه " ډارډي او پساکا "، په خپل حال پاتې دي - دا ژبې ځنې آریائ دخاڅرلري - دغه شان د پامیر ژبې لکه غلچه، بدخشئ او رمړي او بلوچي وغیره هم دي - په دے ژبو کښې پښتو هم ده. چه د پښتنو ژبه ده - او لکونه خلق په دے ژبه خبرے کوي - دا ژبه چه ورته پښتو وئیلے شي د افغانانو ژبه ده - مګر دافغان نامه دے خلقو ته ایرانیا نو ایښې ده. اصلاً دوي هم هغه پکهت قوم دے چه په رِګ ویدا کښې ذکر دے - او وروستو هیرودوټس دپکتویس په نامه یاد کړے دے - دا ژبه لکه چه پخوا خلقو په عبراني ډله کښې شمیرله - اوس سوچه آریائ ژبه ثابته شوه - او څه رنګ چه د پامیر نورے ژبې لکه غلچه، بلوچي، بدخشي وغیره د شرقي کورنئ یعني د زند سره اړه لري - دغه شان پښتو هم اصالتاً

له دے کورنۍ څخه ده[1]۔

یو بل مستشرق ډاکټر «ترومپ»، په ډیر اعتماد سره دا وائي چه پښتو په اصل کښې د غربي (ایراني) ژبو په ډله کښې نهٔ ده بلکه د هند او آریائي ژبو په ډله کښې شامله ده خو سره د دے خالصه هندی ژبه ورله هم نهٔ شو ویلے۔ بلکه د قدیمے زمانے راسے دا ژبه یو مستقله او زړه ژبه ده۔ او په ابتدا کښې د هندی او ایراني ژبو څخه بیله شوی ده۔ و لے دواړو سره په خصوصیاتو کښې اشتراک لری۔ او مقتدره ژبه ده۔ یعنی د ډاکټر ترومپ په خیال کښې پښتو دهندی او ایراني ژبو ترمینځه د اتصال کړۍ ده۔ او که چرے د پښتون قام د وطن جغرافیائي ماحول په نظر کښې او ساتلے شي نو د دے پورته قیاس مرسته ترینه کیږی۔ دا ظاهره ده چه پښتانهٔ د هند او ایران ترمینځه پراته دی۔ او د تاریخ په مختلفو دورونو کښې د دے دواړو ملکونو نه د پښتنو ژمکه متاثره شوی ده۔ نو دا د تعجب خبره نهٔ ده۔ که چرے پښتو ژبه د هندی او ایرانی ژبو د خصوصیاتو نه متاثره وی۔ او د دواړو ژبو خصوصیات پکښے څرګند ښکاری۔

هم په دے ډول د فرانس یو بل مستشرق ډاکټر هنری هم دد ے خیال اظهار کوی چه پښتو ژبه یو مستقله ژبه ده۔ او ډیرے مودے نه د سنسکرت او زند سره په ګوانډ او ژور تعلق کښې پاتے ده"۔ د دے قیاس مرسته د دے نه هم کیږی چه که چرے د پښتو، سنسکرت او زند ترمینځه عمومی مقابله اوکړے شي۔ نو دا درے واړه ژبے په الفاظو کښې د ګرېمر په اصولو کښې، د اعدادو په ساخت او وینا کښې یو تر بله ډیرے نژدو معلومیږی او دا د دے خبرے څرګند دلیل دے چه پښتو هم د سنسکرت او زند په څیر یو پخوانۍ او مستقله ژبه ده۔ او د دے ژبو سره ئے ترمودومودو تماس او تعلق پاتے شوے دے[2]۔

مشهور مستشرق میجر راورټي د خپل پښتو ګریمر په مقدمه کښې د پښتو ژبے په اصلیت تفصیلی بحث کوی۔ او د دے نتیجے ته رسی چه د پښتو، زند او پهلوی ترمینځه ډیر مشابهت دے۔ دے وائي چه د پښتو ژبے په زړو او پخوانو کتابونو کښې د زند په شان د حرکاتو په ځائے حروف لیکلی شوی دی په دے وجه دا ژبه د سنسکرت او زند سره ډیر مشابهت لری۔ او د پهلوی سره

---

[1] تاریخ ادبیات پښتو د ښاغلی عبدالحئ خان حبیبي

[2] د پښتو، سنسکرت او زند د عموی مقابلے د پاره تاریخ ادبیات پښتو د ښاغلی عبدالحئ خان حبیبي کتل پکار دی۔

يئ هم ټينګ تعلق ظاهر دے. ځکښې دا ښاغلے وائي که چرے د پښتنو د ټولو اطرافو ادبياتو ته اوګورو. نو داسے معلوميږي چه دا ژبه د ادبي ذخائرو له مخه هم شته منه ده. ډير شاعران او مؤلفين پکښې تير شوي دي. د دے ژبے ملي سندرے او بدلے داسے هم دي چه هغه د ملي سازونو سره ويلے شي. دا بدلے د جوش او حرارت نه ډکے دي "

په دے ډول يو بل ښاغلے عالم مسټر الفنسټن د پښتو په باب کښے داسے وائي، "د پښتو ژبے بنيادا او آره په آسانئ نه معلوميږي. ځکه چه د دے ژبے ډير الفاظ او افعال چه دا ژبه ترينه جوړه شوي ده. داسے دي چه د هغې ريشه او بنسټ معلوم نۀ دے. او دا هغه الفاظ دي چه د ژبے اصلي اجزا ګڼلے شي. بيا هم څنے د دے الفاظو څخه د زند او پهلوي سره نزدے تعلق لري. مثلاً پلار، مور، ورور، خور وغيره. وړاندے دا ښاغلے عالم وائي چه ما د پښتو ژبے په (۲۱۸) کلماتو کښے پلټنه اوکړه. ولے يوه کلمه هم د سامي ژبو سره لږه هم مشابهه معلومه نۀ شوه. البته په دے الفاظو کښے په سلو کښے ترلسو داسے الفاظ وو چه له کُردي ( KURDISH ) ژبے سره يئ نزدے والے لرۀ. او چونکه کردي ژبه هم د "اندو ژرمن" ژبو څخه ده نو دا ويلے شو چه پښتو هم له دغه ژبو څخه ده.

پس د دے ټول بحث خلاصه دا شوه چه پښتون هغه قام دے. چه په اول ځل يئ ذکر رِګ ويدا کښے د "پکتها" او "پکهت" په نامه شوے دے. د دے نه وروستو دا قام د باختر دا ستوګنے په وجه په "باختري" مشهور شو. او په اوستا کښے د "بختري" په نوم ذکر دے. او د بلخ ښار هم د دوي په نامه شهرت موندلے دے. وروستو بيا په هخا منشي دور کښے د سنه ۵۰۰ ق.م په خوا و شا کښے د يوناني مورخينو لخوا دا خلق د "پکتويس"، پکتوان او د دوي ملک د پکتيکا، پکتيکے او پکتين په نامه ياد شوے دے. دغه ټول الفاظ د اوسني لفظونو پښتون او پښتيځا (پښتو نخوا) سره مطابقت لري چنانچه په مستشرقينو کښے په اول ځل پروفيسر "لاسن" چه د باختري يونانيانو تاريخ يئ ليکلے دے. د هيرودوټس "پکتويس" او د اوسني زمانے د لفظ پښتون ترمينځه مطابقت تسليم کړو. او وروستو بيا نورو مستشرقينو لکه "ټرومپ" او "ګريرسن" دغه مطابقت اومنلو. پس د دے تاريخي شواهدو په رڼا کښے دا خبره واضحه شوه چه پښتون قام د آرياني قبائيلو يوه څانګه او د دوي ژبه د آرياني ژبو د کورنئ څخه يوه ژبه ده.

# د پښتو د نسل څېړنه

## پښتانهٔ څوک دي؟ (۴)

د پښتنو د اصل نسل په حقله مشهورې نظريې په تېرو پاڼوکښې د ضروري تفصيل سره بيان کړې شوې . او د تصوير ټول اړخونه څرګند کړې شول . په دې نظريو د غورکولو نه پس دا ظاهرېږي چه په عمومي ډول د پښتنو د اصل په باب کښې دوه متضادې نظريې دي . يعني څنې عالمان دوی نسلاً ساميان ګڼي . او څنې نورې د آريائي قبائيلو يوه څانګه ګڼي . او ورله آرين النسل وائي .

زهٔ تقريبًا د ديرشو کالو نه د خپلو نيمګړو ذرائعو په دائره کښې د پښتون قام د تاريخ څېړنه کوم . او د خپلې نيم نيمګوړې مطالعې په رڼا کښې په دې وينا کښې خپل ځان حق به جانب ګڼم . چه د پښتنو د اصل نسل په باب کښې چه د اسرائيليت نظريه په کوم شکل کښې مشهوره شوې او په تاريخونو کښې ليکلې شوې ده . هغه په خپل موجوده شکل کښې د يوې افسانې نه زيات اهميت نهٔ لري . او دا ظاهره ده چه افسانوي روايات د تاريخ درجه نشي موندلې . دا نظريه لکه چه وړاندې ويلې شوې دي په خاص هنګامي حالاتو کښې په هند کښې د هغه خلقو له خوا مرتب شوې ده چه هغوی د نسل له مخه خو يقينًا پښتانهٔ وو . ولې د پښتون قام او د پښتنو د اصلي وطن سره د هغوی هيڅ څه تعلق نهٔ وو پاتې شوې . دا خلق په هند کښې پيدا شوي او لوئې شوي وو . او په هند کښې د مغلو له خوا د افغان په نامه مشهور او پېژندلې شول . دوی به خپله هم خپل ځان ته افغان ويل . او پښتون قام يې د افغان په نامه پېژندلو . دې خلقو دا خپله نظريه په دې بنياد قائمه کړې وه چه پښتون افغان دے . حال دا دے چه پښتون افغان نهٔ دے بلکه پښتون دے . د افغان نامه د پښتون قام تاريخي او قامي نامه نهٔ ده . بلکه دا نوم د دې خلقو د پاره د اسلامي دورې په آغاز کښې اول عربو او ورپسې ايراني مؤرخينو استعمال کړې دے . او د دې لفظ نه د هغوی مراد يو خاصه يا خاصې قبيلې وې . وروستو

دهندیانواوایرانیانوله خوا دا لفظ په عمومی ډول د ټولو پښتنو د پاره استعمال شو. او دے نلے دومره وسعت او عمومیت بیا موند چه د ټول پښتون قام یوملی نوم وګرزیدهٔ ـ او هغه ټول خلق د افغان په نامه مشهور شول. کوم چه د پښتنو په علاقه کښے استوګن وو. خواکه د هغوی ژبه پښتو وه اوکه بله ـ او یا نسلًا هغوی پښتانهٔ وو یا غیر پښتانهٔ. چونکه افغان د پښتنو یو ملی نوم دے نهٔ قامی او تاریخي ـ په دے بِنا د لفظ افغان تاریخي څیړنه په لنډ ډول ضروری ده.

**افغان:-** ترکومه حده چه معلومه شوی ده د "افغان" کلمه دلفظ "اوغان" نه معرب ده ـ چه په اسلامی دوره کښے دمؤرخینو له خوا د پښتنو دپاره استعمال شوی ده. چنانچه ابو نصر محمد عبدالجبار العتبی په تاریخ یمینی کښے په واضح ډول دا لیکی چه په "افغان" کښے د "اوغان" تعریب دے ـ په اسلامی مؤرخینو کښے ابو ریحان البیرونی، فردوسی طوسی، ابوالفضل بیهقی، اومنهاج السراج او دا سے نورو مورخینو هم د افغان نامه بیا بیا د دے خلقو (پښتنو) د پاره استعمال کړی ده. سره د دے چه اتمه صدیٔ هجری کښے دا سے مؤرخین هم وو چه هم هغه قدیمی لفظ "اوغان" یے استعمال کړے دے. لکه ظفر نامه، ملفوظات تیموری، او مطلع السعدین وغیره.

د مسټربیلو په خیال کښے د افغان لفظ "اغوان" او یو زوړ او پخوانے لفظ دے چه د آریائی ریشے سره تعلق لری ـ ددهٔ په خیال کښے دا لفظ وروستو اوغان او افغان شوے دے. د "انډیکا" مترجم مسټر کونډل هم دخپلو تحقیقاتو په بِنا دا لفظ (افغان) د سنسکرت ژبے د یو لفظ وران شوے شکل ګڼي.

د لفظ افغان په باب کښے د "قاموس اعلام" مصنف بناغلے شمس الدین سامی بے داسے وائی "افغان یو ډیر پخوانے قام دے چه په پښتو ژبه خبرے کوی ـ (او) دا ژبه د آریائی ژبو به ډله کښے شامله ده. او د سنسکرت او فارسیٔ ژبو سره ډیر قریبی مشابهت او مناسبت لری ـ د "افغان" نوم د دے خلقو د پاره ایرانیانو ایښے دے او دعمومی نوم درجه یے موندلی ده. دا نوم نوے نوم نهٔ دے بلکه ډیر پخوانے دے ـ او د مورخینو پلار هیرو ډوټس چه په کومه موقع د هندوکش د استوګنو ذکر کړے دے. هلته کښے د سکائی لاکس په قول د افغان نوم په جزوی تحریف سره ذکر کړے دے".

په دے ډول د هندوانو په مذهبي کتابونو کښے "اسواکان" یا "اسواغانان" "د مملکت سوران" په معنیٰ راغلے دے. دغه شان په مها بهارت کښے د "اسواکا" په نوم

د هند په شمال غربي سرحد باندے دغنے قبائیلو ذکر هم شوے دے۔ دا « اسواکا » خلق په اکثر و احتمالاتو د سکندر د یوناني مؤرخینو له خوا د « اساکینی » په لفظ یادشوي دي۔ هم په دے ډول د سنسکرت په قدیمي لغاتو کښے « اب گاڼ » لفظ د یو داسے قوم د پاره استعمال شوے دے چه موسیقي نه لري۔ احتمال لري چه دا لفظ به د پښتو د پاره استعمال شوے وي۔ او وروستو به هم دغه لفظ د زمانے په تیریدو سره په افغان تبدیل شوے وي۔

په ارمني ژبه کښے د« اوغان یا اغوان » لفظ د هغه خلقو د پاره استعمال شوے دے کوم چه په غرونو کښے استوګن دي۔ او دغه رنګ د یوناني ژبے لفظ « آګوان » هم دغه دارمني ژبے د لفظ مفهوم ادا کوي۔ امکان کیدے شي چه آرمینیانو به پښتو ته اوغان یا اغوان وئیل۔ او دغه لفظ به وروستو اسلامي دوره کښے د عربو مؤرخینو له خوا په افغان سره بدل شوے وي۔

د اسلامي دورے نه وړاندے په ساساني تاریخ کښے د شاه پور اول (سنه ۲۲۶ء) په یو کتبه (نقش رستم) کښے یو لفظ « ابګان » موجود دے۔ امکان لري چه دا « ابګان » هم هغه لفظ ابګاڼ وي۔ په دے دستور د شاه پور سوم په عهد کښے هم یو لفظ (اپا-کان) لیدلے شي۔ او مشهور چیني سیاح « هیون سانګ » هم د کوهِ سلیمان په لړکښے د (اے-پي-کان) په نامه دغنے خلقو ذکر کوي۔

دا ټول لفظونه یعني اسواغان، اسواکان، اب ګاڼ، ابګان، اپاکان، او اے پي کان، د لفظ افغان سره قریبي نزدیکت لري۔ امکان لري چه د دے لفظونو ریښه هم هغه دارمني ژبے لفظ اوغان وي۔ او د دے نه دا قیاس کیدے شي چه د شاپور اول په منصب دارانو کښے به په دے لفظ (اوغان، ابګان، افغان) موسوم څنے خلق موجود وو۔ او دا نوم به دوی ته د خپلے غرنیزے علاقے په وجه ښودلے شوے وي۔

په شپږمه صدئ مسیحي کښے د هندوستان مشهور منجّم « ورهامهیره » په خپل کتاب « بهرت سمهیتا » کښے هم د « افغان » لفظ « ذکر کړے دے۔

په اسلامي دوره کښے په اول وار دا لفظ (افغان) په حدود العالم من المشرق الی المغرب (تالیف سنه ۳۷۲ھ / ۹۸۲ع) کښے د پیښور په بیان کښے داسے شوے دے:

« پیشاور جائیست بادشاه او مسلمان نما و زن از سی بسیار دارد از مسلمانان و ان افغانان و از هندوان » یعني پیښور یو داسے ځائے دے چه د هغې بادشاه خپل ځان د

مسلمانانو په شان ښکاره کوی۔ او د دیرشو نه زیاتے ښځے لری۔ چه څه مسلمانانے دی، څه افغانانے او څه هندوے۔ په دے عبارت کښے د مسلمانانو او هندوانو نه بیل ځان له د افغانانو ذکر کول د دے قیاس مرسته کوی چه د دے علاقے پښتنو لا د څلورے صدئ هجری تر آخره هم په عمومی ډول اسلام نهٔ وو قبول کړے۔ او د دے نه د اسرائیلیت د نظریئ د هغه حصے بطلان کیږی چه د هغې له مخه د قیس عبدالرشید د مسلمانیدو سره سم په ټولو پښتنو کښے اسلام خور شوے دے۔

د دے نه پس تر اتمے صدی هجری پورے اسلامی مورخینو لکه ابن بطوطه او په دهٔ پسے بیدفرشتے، او نورو د افغان نامه بیا بیا ذکر کړی ده۔ ولے د دے نوم نه د دوی مراد یوه قبیله یا قبیلے وے۔ نه دا چه په طور دیو قامی نوم به دوی دا نوم استعمالولو۔ تر دے وخته دا لفظ (اوغان) یا (افغان) دیو قبیلے یا څو قبیلو یا څو قبیلو په نامه اطلاق کیدلو۔ ولے دا خبره ظاهرول مشکل دی چه دا نامه د دوی خپله ده۔ او کهٔ ډکواندړی قبیلو او خلقو له خوا به دوی ته ورکړی شوی وی۔

ځما قیاس دا دے چه دا نامه د دوئ خپله نهٔ وه۔ بلکه ډکواندړی قامونو بالخصوص د ارمینیانو له خوا دا نوم دوی ته وئیلے شوے وو۔ او وروستو بیا نورو مؤرخینو او خلقو هم دا نوم (افغان) د دے خلقو (پښتنو) د پاره دومره په کثرت سره استعمال کړو چه د اصلی نوم درجه ئے اوموندله۔ زهٔ د دے خپل قیاس په مرسته کښے د هیرو ډوټس یو حواله پیش کوم۔ هیرو ډوټس چه د "دارایوش" د صوبو د خراج په ذکر کښے چه کوم ځائے د هغهٔ د سلطنت دیارلسمه صوبه یادوی نو داسے وائی چه په دے دیارلسمه صوبه کښے آرمینیان او پکتویس (پښتانهٔ) استوګن وو۔ د دے نه دا ظاهره ده چه آرمینیان او پښتانهٔ دواړه د یو صوبے خلق او په خپلو کښے ګواندیان وو۔ او د هیرو ډوټس دا "پکتویس" هم هغه خلق وو چه اوس ورته پښتانهٔ وئیلے شی او لکه چه پورته وئیلی شوی دی په ارمنی ژبه کښے به اوغوان یا اغوان د غرئیزے علاقے استوګنو ته وئیلے شول۔ پس دا ظاهره ده چه ارمینیانو به د هیرو ډوټس "پکتویس" او اوسنی پښتانهٔ په خپله ژبه کښے د اوغوان یا اغوان په نامه یادول او دغه لفظ به د اسلامی دورے نه وړاندے هم د پښتنو د پاره وئیلے شو، او بیا به په اسلامی دوره کښے د عرب مؤرخینو له خوا په افغان سره تبدیل شوے وی۔

په هر حال دا نامه ورځ په ورځ خوریدله۔ او اثر و نفوذ ئے موندلو۔ چنانچه په لسمه صدئ عیسوی کښے دا نامه د ومره عامه شوی ده چه البیرونی هم د اباسین نه په قبله د کابل پورے

په تهوله غرځېزه علاقه کښې د پښتنو قبائیلو ذکر د افغان په نامه کړے دے. او د اخلق ئے د سرکښۍ ، سرتیزه په لفظونو یادکړی دی - دا لفظ (افغان) د شاه عباس اعظم صفوی (سکه۱۸۵۵) په زمانه کښې د ابدالی قبیلے د پاره په عمومیت سره استعمال شوے دے - وروستو په دے نامه غلجی قبائیل هم یاد شوی دی - او د دے نه پس په یوولسمه دولسمه صدئ هجری کښې د افغانستان د تهولو قبائیلو د پاره هم د دے لفظ وئیل شروع شول - دا لفظ افغانی ، هندی او ایرانی لیکوالو په خپلو آثارو او تالیفاتو کښې په وسیعه معنیٰ او کثرت سره استعمال کړے دے - او ابوالفضل او خان جهان لودهی دا لفظ (افغان) د تهولو پښتنو قبائیلو د پاره وئیلے دے -

د اووے صدیٔ هجری په ابتدا (۶۱۸ هـ) هجری کښې شاید چه په اول وار د افغانستان نامه د پښتنو دمسکن په دول په تاریخ هرات کښې « سیفی هروی » ذکر کړی ده. عبارت داسے دے « او لجاشو خطه هرات را تا اقصائے افغانستان و رود آمو به سلطان غیاث الدین کرت مفوض کرد ے » د دے نه پس عبدالرزاق په مطلع السعدین کښې هم د افغانستان نوم ذکر کړے دے - او افغانستان نه ئے مراد د پښتنو مسکن کملے دے - دۀ داسے لیکلی دی :-

« ذکر توجه امیر کورگان ، به سیستان ، قندهار و افغانستان » او د دے عنوان لاندے د فراه ، بُست ، قندهار او کوه سلیمان وغیره علاقے ذکر کړی دی۱ - په دے دول بابر هم (سکه۱۵۰۴) د کابل دفتح کولو نه پس د کابل د حالاتو په لړکښې د پښتنو ژبه د « افغانی » په نامه او د کابل سویل ته د پښتنو علاقه د افغانستان په نامه یادکړی ده - د دے نه علاوه بابر په خپلو مهماتو کښې تول پښتانۀ قبائیل خواه که هغه یوسف زی دی که گګیانی افریدی دی که بنګښی ، دله زاک دی او که وزیر یا بنوڅی - بے د څه فرق او امتیاز نه د « افغان په نامه ذکرکړی دی - او د دے نه دا خبره بلکل واضح ده چه د اصلی او وصلی افاغنه په نامه د پښتنو قبائیلو کوم تقسیم چه د پښتنو خپلو مورخینو کړے دے او یا بیرونی لیکوالو پښتانۀ قبائیل د « افغان و پټهان » په نوم بیل کړی دی - هغه بلکل فرضی دے او په تاریخی شواهدو مبنی نۀ معلومیږی۲ -

غرض په دے ترتیب سره مونږ داوینو چه د زمانے په تیرید و سره د افغان نامه د قبیلے یا قبیلو نه تیره شوه - او په لسمه یوولسمه صدئ هجری کښې د دے ملک د تهولو

---

۱ آریانا (دائرة المعارف - جلد دوم بحث افغان) - ۲ تزک بابری -

استوګنو د اصلي او تاريخي نوم(پښتون) په ځای يو ملي نوم[۱] اوګرزيد . هم په دې ډول د زمانې په تيرېدو سره په دیارلسمه صدۍ هجري کښې د افغانستان نامه يوازې د پښتنو د مسکن نامه[۲] بلکه د ټول ملک نامه شوه - او د پخواني زوړ نوم "خراسان" ځای او نیولو - او د بيروني ملکونو سره په خط اوکتابت او معاهدوکښې د دې ملک نامه د خراسان په ځای افغانستان ليکل شروع شوه - چنانچه لارډ آکلينډ د هند ګورنر جنرل په خپل يو جوابي خط کښې چه شاه شجاع سدوزي ته ئې په سنه ۱۲۵۴هـ / ۱۸۳۸ع کښې ليکلی وو - د افغانستان لفظ د مملکت په ډول د پخواني خراسان په ځای دوه ځايه ليکلی دې.

غرض په دیارلسمه صدۍ هجري کښې د افغانستان د ټولو قبائيلو د پاره خواه که هغه پښتانه وو که غيرپښتانه د افغان نوم وئيل شروع شول - او د دوی د اوسيدلو علاقه د افغانستان په نامه مشهوره شوه . او د دې علاقې پخوانې نوم (خراسان) د استعمال نه اووتلو - ولې د دې باوجود تراوسه پورې پښتانه خپل ځان ته پښتانه وائي نه افغان - يعنې پښتانه د افغان نوم يو ملي نوم ګڼي نه قامي او تاريخي . او د اسې پکار هم ده . ځکه چه د پښتون نوم ډير زوړ او پخوانې دې - دا نوم د پښتنو تاريخ ترويدې دورې رسوي - دغه نوم د نن نه دوه نيم زره کاله اګاهو هيرو ډوټس او نورو ايراني مؤرخينو په خپلو خپلو آثارو کښې د خپلې لهجې مطابق د پکتويس، پکتوان او پکتين په لفظونو او د دوی د استوګنې مرکه ئې د "پکتيکا" پکتيکې ، پاکتيا" په الفاظو ذکرکړی ده . او د دې الفاظو مطابقت د پښتون او پښتنخا (پښتونخوا) سره مل شوی دې -

**پشتون ، پختون ، پښتون** :- لکه چه د مخه موا ووئيل د پښتون قام هرفرد خپل ځان ته پښتون وائي نه افغان[۲] - د دې لفظ (پښتون) تلفظ د پښتنو د مشهورو لهجو مطابق

---

[۱] د قام او ملت بيلتون ته فکر پکار دی .
"قام" د ګرد هغه ډلو ته وائي چه په هغوکښې څه داسې خويونه ، خصلتونه او خاصيتونه موجود وي چه هغه د هغوی په اولادکښې هم د ميراث په ډول منتقل شوي وي او د "ملت" اطلاق د ګړو په داسې ډلوکيرې چه هغوی اکثر د مختلفو قامونو وي - ولې په يو ملک کښې او د يو نظام او ضابطې لاندې ژوند تيروي - او په فائده نقصان کښې ټول سره شريک وي - (د موسيو ليبان د تمدن عرب په حواله)

[۲] بناغلې کيرو په خپل کتاب "دی پټهانز" صـ۱۳ کښې وائي "که چرې د يوسف زو يا خليلو قبائيلو د يو فرد نه تپوس اوکړې چه ته څوک ئې ؟ نو هغه به په جواب کښې سمدستي دا اووائي (پاتې په ۸۶ مخ )

په دوه ډوله کیږی -(۱) پښتون (۲) پښتون - د لفظ پښتون په تاریخي څیړنے کښے موږ د دے لفظ سراغ د رِګ ویدا په « پکتها »، د « اوستا » په « بخدی » او د هیرو دوټس په « پکتویس کښے موندلے دے - او لکه چه وټیلی شوی دی د لفظ « پکتویس" او پښتون مطابقت اکثرو مستشرقینو لکه ټرومپ اوګریرسن اوځنے نورو منلے دے- لیکن د اوسنۍ زمانے ځنے مستشرقین چه سرفهرست ئے د « اوسلو » پوهنتون ښاغلے ډاکټر مارګن سټرن" دے د دے نه اختلاف کوی - د دوی دا اختلاف د دے لفظ (پښتون) په تلفظ مبنی دے - د دوی په خیال کښے د پښتون قام قدیمی او کلاسیکی نوم پشتون (په ش) دے نه پختون - د پښتون لفظ د دوی په رائے کښے نسبتًا د وروستۍ زمانے او یو عوامی نوم دے - په دے لړکښے د کیمبرج پوهنتون ډاکټر « بیلے » هم د ښاغلی مارګن سټرن هم خیال دے- یعنی دغه هم د لفظ پشتون قدامت او اصلیت منی - او ځکه د پکتویس او پښتون د تاریخي مطابقت منلو ته غاړه نږدی -

د ښاغلی مارګن سټرن په خیال کښے پښتانهٔ دغه خلق دے چه د هغوی اسلاف یونانی لیکوال بطلیموس د « پرستے » یا « پرستانے » یا « پارستانے » (PARSTHYES) په نامه ذکرکړی دی - دا خلق د پارو پامیز په لړکښے اوسیدل - دا ښاغلے لیکوال د « پشتون » او « پرستے یا پرستانے » په لړکښے داسے وائی چه د فارسۍ ژبے لفظ پشت او د اوستا

(پاتے حاشیه د ۸۵ مخ) چه زهٔ افغان یم" - او هیڅرے به دا او نهٔ وائی چه زهٔ پختون (پښتون) یم - سره د دے چه هغه پښتو وائی - (یعنی د سختے لهجے پښتو وائی -) ولے د دے باوجود دغه خپل ځان افغان ګڼي - او د روایاتو په بنا خپل ذات په درانیانو کښے ګڼی شیری بلکه د خپل معیا ر مطابق خپل ځان د درانیانو نه هم اوچت ګڼي - ځکه چه درانیان په نرمه لهجه کښے خبرے کوی - او دوی (یوسف زی وغیره) په سخته لهجه کښے - اودوی داخپله لهجه بهترینه ګڼي - دغه په خپل نسل غاور خالص افغان دے - (او) دغرغیزو قبائیلو خټک، افریدو او وزیرو په حقله به داسے وائی چه (اګرچه) دوی ښهٔ « پشتانهٔ یا پختانهٔ » دی، ولے دوی کرلاني دی - او ددوی د افغانیت دعوی مشکوکه ده."

د ښاغلی کیرو د دے پورته وینا په حقله به زهٔ دومره اووایم چه ترڅومره چه د یوسف زو، خلیلو یا نورو پښتنو تعلق دے - هر دغه پښتون چه په پښتو ژبه خبرے کوی - او پښتو ئے مورنۍ ژبه وی - دغه هیڅرے هم نهٔ ځان ته افغان وائی او نهٔ پټهان - او د دے فاضل داو ینا د حقیقت نه خلاف ده - د دے نه علاوه کومو روایاتو ته چه دے ښاغلی لیکوال اشاره کړی ده، دغه هم محض روایات دی - او دا ظاهره ده چه محض روایات تاریخي درجه نشي موندلے -

ژبے لفظ پرهستی (PRSTHEE) او د سنسکرت ژبے لفظ (PRSTHA) هَم معنے دی. دا ښاغلے وائی چه په اوستائی او سنسکرت ژبو کښے چه د (رس. RS) مرکب تورے کوم ځائے استعمال شوے دے . په موجوده فارسئ. پښتو وغیره ژبو کښے هغه په (ش) بدلیږی . نو د دے اصول په رڼا کښے د (رِٻ ، رس ، ڂ یا پ ، رس ، تاځ ) نه پښتے "پُښتا" جوړیدے شی . او دغه پښتے ، پښتا ، پُښتی وروستو پښتین او بیا پښتون شوے دے . او د دهٔ او د ځنے نورو عالمانو دا هم خیال دے چه په موجوده فارسئ وغیره ژبو کښے د (ش) شکل د (خ) په نسبت زیات قدیم دے .

لیکن د ښاغلی مارګن سټرن د دے نظریٔے سره ښاغلے کیرّو اتفاق نهٔ لری . او داسے وائی چه " په لفظ پښتون کښے (ښ) ته په (خ) باندے ترجیح ورکول د کابل ریډیو د پرو پیګنډے اثر دے . ځکه چه دوی د قندهار لهجې (نرے لهجې) ته ترجیح ورکوی . لیکن دا ظاهرهٔ ده چه د هیرو ډوټس پکتویس د قندهار د خوا و شا استوګن نهٔ وو . بلکه د ګندهارا استوګن وو . چه دوی اوس هم په سخته لهجه کښے خبرے کوی . او د دے خبرے ته هم فکر پکار دے چه په (خ) باندے (ش) ته ترجیح ورکول یا داسے به اووایو چه په سختے لهجې باندے نرے لهجې ته ترجیح ورکول د مردان او صوابئ د یوسف زو د رائے نظرانداز کول دی . ځکه چه دوی خپله لهجه په ټولو کښے غوره ګڼی . د دے وینا نه پس دا ښاغلے د سختے لهجې د قدامت په لړ کښے د لفظ خواَسپس ( KHO - A$^S$PA$^S$ - رودکونړ ) نه استشهاد کوی .

د ښاغلی کیرو د لوئے علمیت او فضیلت د اعتراف او احترام باوجود د هغهٔ د دے خیالاتو سره اتفاق نشی کیدے . په دے لړ کښے اول دے ته فکر پکار دے چه د لفظ پښتون د قدامت په لړ کښے چه ښاغلی مارګن سټرن او د هغهٔ همخیالو څهٔ وئیلی دی هغه ئے د خپلو تحقیقاتو په رڼا کښے وئیلی دی . په داسے لویو فاضلانو چه د هغوی د رائے احترام ښاغلے کیرّو پخپله هم کوی . د چا د پروپیګنډے هیڅ اثر نشی کیدلے . دا خبره هم وزن نهٔ لری چه د یو خاصے علاقے خلق خپلے لهجې ته یا خپل ځان ته په یو خاص ګوری نو نور خلق دِ هم په پټو سترګو د هغوی د رائے سره اتفاق اوکړی . داسے به څوک وی چه هغوی به خپله ژبه او خپله لهجه د نورو نه غوره نهٔ ګڼی . کارغهٔ چه کارغهٔ دے هغه هم خپل بچے د هر چا نه ښیښن ګڼی . او " سیشکے " هم خپل بچی ته د هر چا نه پوست او نرم وائی .

اوس به د خواسپس (KHO-ASPAS) جاج واخلو . دا ښاغلے وائی چه د " رودکونړ "

نامه د سکندر د زمانې لیکوالو د « خواسپس » یعنې د (ښو اسونو GOOD HORSES) په لفظ ذکرکړی ده - نو په دې لفظ کښې د (ښو) موجودګی د پښتنو د سختې لهجې په قدامت یو شهادت دې - د دې سره دا خبره دا مناغلې ځپله هم منی - چه د سکندر د زمانې نه ډیر وړاندې هیرودوټس په ایران کښې د « رود قارون ،، نامه هم په دې لفظ (خواسپس KHO ASPSAS) ذکرکړی ده - په دې لړکښې به زهٔ دومره اووایم چه دا لفظ (ښو) د پښتو په رسم الخط کښې (ښو) لیکلې شي نه (ښو) - په اصل کښې دا لفظ (ښو) د اوستائي ژبې (رهو) وو چه وروستو په ایراني اثرکښې په (ښو) بدل شو - پس لفظ « خواسپس » دایراني لهجې لفظ دې چه یوناني لیکوالو هم په خپله لهجه کښې لیکلې دې - او دا نه چه ګونډې دا (ښو) د پښتنو لفظ دې - او که هسې چرې په یو قدیم لفظ کښې درخ) موجودګی د قدامت سند اوګڼلې شي نو بیاهم د سکندر په زمانه کښې بلکه د دې نه هم وړاندې په دې علاقه (ګندهارا) کښې د یو ښار نامه پښکلاوتي وه - چه د سکندر یوناني لیکوالو د « پیوکی لوتیس » په لفظ ذکرکړی ده - دا لفظ یعنې « پښکلاوتي » یعنې د سنسکرت ژبې لفظ دې - پس زیات نه زیات به دا اووایو چه د سکندر د حملې په وخت کښې د ګندهارا انتهائي شمال غربي علاقو کښې داسې خلق اوسیدل چه د هغوی لهجه د ایراني لهجې نه متاثره وه - او د ګندهارا په مینځ کښې داسې خلق استوګن وو چه د هغوی په لهجه د هندي ژبو اغیزه وه - او په دې صورت کښې د یوې لهجې د قدامت هډو سوال نهٔ پیدا کیږی - د مناغلې کیرو د دې وینا سره هم اتفاق کول ګران دي چه د هیرودوټس پکتویس صرف د ګندهارا استوګن وو - او د قندهار په خواوشا کښې دا خلق نهٔ وو - زما قیاس دا دې چه پکتویې هډو په ګندهارا کښې استوګن نهٔ وو - او د دې په حقله به په خپله موقع وضاحت اوشي -

زما دا عقیده ده چه پشتون او پښتون په بنیادی طور یو لفظ دې - او دواړه لفظونه د هغه قام د پاره ویلې شي چه اصلي نوم ئې په پښتون لیکلې شي - د تلفظ دا فرق د محیط او ماحول او د زمانې د تغیراتو او تحولاتو نتیجه ده - زما په خیال کښې پشتون د هغه اریائي قبائیلو نوم دې کوم چه په رګ وید کښې د پکتها په نامه یاد شوی دی. د رګ ویدا دا لفظ « پکتها » چه څرنګ لیکلې شي تلفظ کښې (کهه) د (ښ او خ) مخلوط آواز پیدا کوی - لکه د سنسکرت دا لفظ « لکهشمی » چه څه رنګ وئیلې شي - او په پښتو

ژبه کښې د سنسکرت ژبې د دې توری (کهـ) آواز صرف (ښ) ادا کولې شي. دا خبره هم د فکر وړ ده چه په سنسکرت کښې (خ) نشته. او کوم آواز چه په (خ) ادا کیږي د هغ د پاره (ک) استعمالولې شي. دا ظاهره ده چه هیرودوټس به دا لفظ « پکتها » په خپل درست تلفظ سره اوریدلې وي. لیکن هغه د دې لفظ په درست لیکلو کښې معذور وو. په دې ډول هیرو ډوټس د (ښ) آواز هم نه شو ظاهرولې. بِنا په دې هغهٔ دا لفظ د خپلې لهجې مطابق په مفرد (ک) اولیکلو[۱] چونکه په سنسکرت کښې (ک) د (خ) نمائندګي کوي. په دې وجه اوس غلط فهمي پیدا کیږي. په دې ډول ښتون د هغه آریائي قبائیلو نوم وو. کوم چه په باختر کښې پاتې شوي وو. دا خبره د آریائي نظریئې مرستیال هم مني او د ژبپوهانو هم دا خیال دې چه هر کله د آریائي قبائیلو هندي او ایراني سناخونه د خپل اصلي ټاټوبي نه اوکوچیدل. او څنې د هند په لور راهي شول. څنې د هندوکش په جنوبي لمنو کښې استوګن شول او څنې د ایران په لور لاړل نو د دې نه پس په باختر کښې یو نوی ژبه پیدا شوه چه اوس د « زند » په نامه معروفه ده. او د اوستا کتاب په دې ژبه کښې لیکلې وو. په دې ژبه کښې د بلخ نوم د « بخدي » په لفظ ذکر دې. او لکه څه رنګ چه مَنلي شوي ده. د دې ښار دا نوم د خپلو استوګنو (بخد) په نامه معروف وو. نو وروستو د زمانې په تیریدو سره د بخدي نه بختي، پختي، پختین، او بیا پختون جوړ شو. په دې بِنا پښتون د ویدي زمانې لفظ دې او پختون د اوستائي زمانې.

یا داسې به اووایو چه کوم آریائي قبائیل په ړګ وید کښې د « پکتها » په نامه یاد شوي دي. د هغوي په ژبه کښې (خ) نه وه او د هغوي ژبه « پښتو » وه. په دې آریائي قبائیلو کښې څنې قبائیل په ګندهارا کښې هم استوګن شوي وو. او دا یقین ده چه په ویدي زمانه کښې به د ګندهارا د استوګنو لهجه هم هغه شان وه څه رنګ چه اوس د نرې لهجې د پښتنو ده. لیکن چونکه ګندهارا د خپل محل وقوع په وجه د تاریخ په مختلفو دورونو کښې د مختلفو اقوامو او تهذیبونو یو مقام اتصال وو. نو په دې بِنا د دې خلقو لهجه په خپل اصلي شکل کښې پاتې نشوه. په خلاف د هغه پښتنو کوم چه په غرونو کښې او د ټک راټک

---

[۱] دا غلط فهمۍ څنې مغربي لیکوال هم پیدا کوي. دوي لفظ پښتون کله په (خ - KH) او کله په (ش - SH) لیکي. ولې د پښتو ژبې د (ښ) متبادل توري په دوي حروفو کښې (KSH) دې.

دلارو نه بیرته آباد وو۔ زهٔ د دے خپل قیاس په مرسته کښے دا وایم چه ترڼن ورځ د نرے لهجے د پښتنو په ژبه کښے داسے زاړهٔ او قدیمی الفاظ موجود دی چه هغه د سختے لهج د پښتنو په ژبه کښے نشته ۔ لکه په مثال کښے " ورشو " (چراګاه) - " اوبجه " (زمکه) - " پلستے " (ځلے) - " پرګوړ " (چراګاه) - " نرګاړی " (روکړی - خلق) " ادوم " (وردن) او داسے نور ډیر لفظونه ۔ دا د دے خبرے یو څرګند دلیل دے چه د نرے لهج پښتو په خپله لمنه کښے د قدیم آریائی ژبے ذخائر نسبتًا زیات خوندی ساتلی دی ۔

دا خبره هم د فکر وړ ده چه د نن نه څهٔ دیرش څلویښت کاله اګاهو لفظ (پښتون) د ملکی او غیرملکی خلقو په لیکنو کښے به " پشتون " لیکلے شو، او د نولسمے صدئ عیسوی ترآخره پورے په زړو کتابونو کښے داخلق د پشتون په نامه ذکرشوی دی۔ البته دشلے صدئ په ابتدائی کالونو کښے چه د هندوستان د آزادئ تحریکات په صوبه سرحد کښے هم شروع شول ۔ او پښتانهٔ هم دخپلے آزادئ په تحریکاتو کښے په جوش و خروش سره شامل شول ۔ نو د دے نه پس په تحریر و تقریر کښے لفظ (پختون) وسعت او عمومیت بیاموند ۔ لیکن د دے نه دا مطلب هرګز نهٔ وو چه " پختون " او " پشتون " جدا جدا لفظ دے ۔ او نهٔ د دے نه دیو لفظ په بل باندے د قدامت او تفوق څه سوال پیداکیدے شی ۔البته اوس د څه مودے نه د دے لفظ (پختون) اشاعت او خورونه په باقاعدګئ سره کیږی ۔

زما په خیال کښے لفظ " پشتون " او " پختون " ته په یو بل ترجیح ورکول هیڅ اهمیت نهٔ لری او نه د سختے او نرے لهجے په یو بل د تفوق او قدامت سوال سرته رسی۔ او نه پکښے د تفوق او قدامت سوال پیدا کیدے شی ۔ او نهٔ دا سوال پیدا کول پکار دی۔ ځکه چه دا معلومه ده چه د پښتنو په باب کښے چه څهٔ نیم نیمګوړی معلومات حاصل شوی دی۔ هغه ټول دیونانی مؤرخینو په لیکنو او د مغربی عالمانو په تشریحاتو او توضیحاتو مبنی دی۔ دا ظاهره ده چه یونانی مؤرخین د ژبے او ماحول داختلاف په وجه د دے خلقو او د دے علاقو د نومونو په درست لیکلو او ظاهرولو کښے معذوره وو. او دغه حال د نورو مغربی لیکوالو هم دے ۔ دے ته هم فکر پکار دے چه د رګ وید ا او اوستا او د یونانی لیکوالو ترمینځه هم په سوونو کالونه تیر شوی وو ۔ په داسے حالاتو کښے عین اصلیت ته رسید بالکل ناممکن معلومیږی ۔ د قدامت او ترجیح سوال خو به هله پیدا کیدو چه که چرے د پښتنو خپل څهٔ زاړهٔ او قدیمی آثار پاتے وے ۔او د هغے نه په دے لړکښے څه مرسته موندے

شوے۔ پس موبږ ته په دے خبره هډو سرخوږول پکار ندی چه چرګه وړومبۍ وه که اګۍ۔

اوس به د پښتون او پختون او د نرے او سختے لهجے د قدامت او اصلیت خبره یو طرف ته کړو او د پښتنو د نسلي څیړنے څقله به غور اوکړو. په تیرو پاڼوکښے موبږ د پښتنو د اصل نسل په باب کښے دوه نظریئے لوستلی دی۔ دا دواړه نظریئے په خپلو کښے متضادے دی ولے اول د دے نه چه د پښتنو به باب کښے یوے آخری او قطعي فیصلے ته اورسو موبږ ته پکار دی چه د دنیا د نورو قامونو د نسلونو څیړنه کښے چه دکوم اصول نه کار اخستے شی د هغے په رڼا کښے موبږ هم د پښتنو د نسل جاج واخلو۔ په دے غرض چه د دے پیچیده مسئلے ټول اړخونه ښۀ څرګند شی۔

دا خبره د فکروړ ده چه انسان د سَنګی او فلزی دورونو دختمولو نه پس د تهذیب او تمدن په دائره کښے قدم کیښود او د ترقۍ په لار روان شو نو د ټګ راټګ او حمل و نقل د وسائیلو په بهترکیدو او د ژونه ژواک ضروریاتو او تجارتی او اقتصادی احتیاجاتو مختلف قامونه په خپل مینځ کښے په ګډون او اختلاط مجبور کړل. او په دے ډول د زمانے په تیریدو سره په خانه بدوشو او مقیمو قوامو کښے په یو بل باندے د تفوق او غلبے حاصلولو جذبات راولتهیدل. او د دے نظریاتی اختلاف په وجه په دوی کښے د جنګونو او په یو بل باندے د حملو سلسله شروع شوه. او د دے باهمی جنګونو او حملاتو په نتیجه کښے خوا مخواه د دوئ نسلونه هم د یو بل نه مخلوط او مخروج شول۔ دغه وجه ده چه اګرچه نن زمانه کښے د دنیا اکثر قامونه متحد الاجزا معلومیږی۔ لیکن په حقیقت کښے د هر قام په وینه او نسل کښے د هغه ټولو قامونو آمیزش شوے دے. دکومو سره چه ئے یو اوبل او ژور تعلق پاتے شوے دے. د دے اصول په رڼا کښې چونکه د پښتنو علاقه هم د تاریخ په مختلفو دورونو کښے د مختلفو حمله آورو قامونو یو میدان جنګ پاتے شوے دے. او د مختلفو قامونو سره د پښتنو یو اوږد او ژور تعلق پاتے راغلے دے۔ په دے بِنا د پښتنو په باب کښے هم نن ورځ دا دعویٰ کول بیخی ګران دی چه دوی به خالص سامی النسل وی او یا دا چه د دوی آریائی وینه او نسل به د نورو قامونو د اختلاط او آمیزش نه محفوظ پاتے وی۔ په دے بِنا موبږ ته د پښتنو د نسل په سلسله کښے د پښتنو د تاریخ د مختلفو دورونو او د هغه ټولو قامونو دکومو چه د پښتنو سره تعلق راغلے دے جاج اخستل ضروری دی۔

لکه په تیرو پاڼو کښے چه موبږ د اسرائیلیت د نظریئے خامی او کمۍ د تاریخی شواهدو

په رڼا کښې په کوته کړی دی - په دے دول به د آریائی نظریئے په حقله څنې توضیحات هم اوکړو - دا نظریه لکه چه ظاهره ده ، د رِګ ویدا ، اوستا او یونانی مؤرخینو په شها دتونو مبنی ده - دا درست ده چه په رِګ ویدا کښې لفظ « پکتها » دیو قبیلے د پاره استعمال شوے دے ولے د آریائی نظریئے مصنیان خوا د ټول پښتون قام کنی - په دے لړ کښې که چرے موږ د رِګ ویدا په شهادتونو غور اوکړو نو موږ ته دا خبرے معلومیدے شی :-

(۱) هندی آرین په درے ډلوکښې ویش وو - چه د آسانئ په خاطر موږ یوے ډلے ته د « بهاراتا » ګروپ - بلے ډلے ته د « یادو ګروپ » او دریمے ډلے ته د پکتها ګروپ وایو -

(۲) په بهاراته ګروپ کښې د ټولو نه مهمے قبیلے د بهاراتا او سرنجیانا په نامو معروف وے -

(۳) په یادو ګروپ کښې پنځه قبیلے وے - یادو ، تورواشا ، درهیو ، انی او پورو - دا پنځه واړه قبیلے په ګڼه جانا هم مشهورے وے او په خپلو کښې متحدے وے -

(۴) د پکتها په ډله کښې هم پنځه قبیلے وے یعنی پکتها ، سیما ، بهاراناء ، ایفا ، او ویشانن -

(۵) په هندی آریانو کښې د خپل اصلی مسکن نه اول مهاجرت « بهاراته » ډلے کړے وو - او په دوی پسے یادو ګروپ او په دوی پسے سم « پکتها ګروپ » - د دے قیاس مرسته د دے نه کیږی چه په رِګ ویدا کښې د « بهاراته » د مهاجرت واقعات ډیر تت دی - ولے یادو ګروپ د نوی راتلونکو په دول څو ځایه ذکر شوی دی - د دے نه علاوه د بهاراته قبائیلو د شهزادګانو قربانئ داودم د علاقے د سیندونو په غاړه بیان شوی دی - او دا ظاهره ده چه دا علاقے د شمال مغربی علاقو نه ډیرے لرے دی -

(۶) بهاراته ګروپ او یادو ګروپ په خپلو کښې شدید مخالف وو - په ابتدا کښې بهاراته ګروپ د خپلو مخالفینو په مقابله کښې ډیر کمزورے وو - ولے وروستو دوی اقتدار حاصل کړو -

(۷) « ایندرا » د ټولو اریائی قبائیلو محبوب رب النوع وو - لیکن په اکثرو احتمالاتو د بهاراته ډلے او یادو ډلے ترمینځه د عقیدے څهٔ اختلاف هم وو - بهاراته ډله سخته متعصبه او د ملکی خلقو نه ډیره متنفره وه - په خلاف د « یادو ګروپ » چه دوی به د ملکی خلقو سره هم ګذاره کوله - او د نورو آریائی قبائیلو سره ئے هم ښهٔ تعلقات وو - د عقیدے د دے اختلاف په وجه په رِګ ویدا کښے « یادو او تورواشا » قبائیل یو ځائے نیم د « داس » په لفظ هم یاد شوی دی - په ابتدا کښې دا لفظ (داس یا داسیو) به د غیر آریائی خلقو د پاره

وېلې شوي او ددې نه په مراد ګمراه او د آريائي مذهب مخالف او دشمن وو. په دې بنا څېنې محققين دې عقيدې ته هم مائل دي. چه د بهاراتا ګروپ او د يادو ګروپ ترمينځه څه نسلي اختلاف هم موجود وو. زما قياس دا هم دې چه د رګ ويداتاليف وترتيب به د بهاراته قبائيلو دعروج په وخت کښې شوي وي. ځکه چه دې کتاب کښې د يادو ګروپ د پاره د « داس » وغيره لفظ استعمال شوې دې.

(۸) " يادو او توروا شا " د رګ ويدا په سرودونو کښې د " پارسوا " سره مربوط ياد شوي دي. او ددوي په حقله داسې وېلې شوي دي چه دا قبائيل « ايندرا » د ډيرې لرې زمکې نه راوستل. په آريائي قبائيلو کښې پارسوا د هغه قبائيلو نوم دې. چه وروستو د هغوي دا استوګنې زمکه د هغوي په نامه د « پارس » په لفظ مشهوره شوه. چه اوس د ايران يو حصه ده.

(۹) چونکه « يادو ګروپ او پکتها » په خپلو کښې اتحاديان وو (ددې قياس مرسته د راوي سيند په غاړه د لسو ملکانو دجنګ نه کيږي.) نو موږ دا وېلې شو چه يادو ګروپ او د پکتها ګروپ به په خپلو کښې هم نسل، هم عقيده او هم زبان وو. او څه رنګ چه يادو ګروپ د پارسوا سره مربوط پاتې شوې وو. دغه رنګ به پکتها ګروپ هم د پارسوا سره مربوط پاتې شوې وي.

(۱۰) هغه جغرافيائي خطه چه هندي آرين پرې ميشته شوي وو، د رګ ويدا په شهادت د افغانستان په مشرقي او جنوبي حصو، وادئ کابل، سابق صوبه سرحد او ددې سره ملحقه قبائيلي علاقې مغربي پنجاب او په وادئ سنده مشتمله وه.

(۱۱) په دې وسيعه خطه کښې يوه علاقه د « سپته سند هو » په نامه مشهوره وه چه په اکثرو قرائنو مراد ترنه د پنجاب او وادئ سنده علاقې دي. يادو ګروپ (يادو، توروا شا، درهيو، انو او پورو) په دې خطه کښې استوګن شوي وو.

(۱۲) پکتها ګروپ (پکتها، سيوا، بهالانا، الينا، ويشانن) دا باسيند نه په قبله په هغه خطه کښې آباد وو چه نن ورځ هلته پښتانه قبائيل آباد دي.

د پورته وضاحت په رڼا کښې د رګ ويدا په شهادت دا معلومه شوه چه د پښتونخوا په زمکه پنځه آريائي قبائيل آباد شوي وو. سوال دا پيدا کيږي چه آيا دا موجوده پښتانه قبائيل يواځې د هغه پکتها څانګې دي او که نه دوي د هغه پنځو وارو قبائيلو اولاد دې؟

زما قياس دا دې چه پښتون اولس يواځې د « پکتها » څانګې نه دې بلکه د پنځو وارو قبائيلو اولاد دې « البته دا د »

ده چه څه رنګ په هندي آریاؤ کښې په یوه ډله کښې «بهاراتا» او په بله ډله کښې «یادوه» او «تور واشا» مهم قبائل وو. د غه شان د پکتیانو په ډله کښې «پکتها» او «سیوا» مهم قبائل وو. او دا ټوله ډله د پکتها په نامه مشهوره وه.

دا هم عجیبه اتفاق دے چه زرګونه کاله پس چه پښتنو لیکوالو د پښتنو د شجرو آغاز کړے دے. نو دوی هم د قیس نه پس ټول پښتانهٔ قبائل په پنځو طبقو کښې وېشلي دي. ممکنه ده چه په دے تقسیم کښې هم د زرګونو کالو هغه زوړ یا د سینه په سینه د روایاتو په ذریعه محفوظ پاتے شوي وي. او د زمانے په تیریدو سره ئے اصلي تصور ډیر تت شوے وي. او دا موجوده شکل ئے موندلے وي.

دا خبره د رګ ویدا او آثار قدیمه په شهادت منلې شوي ده. چه د خوریدو نه اول د آریائي قبائیلو ژبه یوه او مذهبي اعتقادات ئے یوشان وو. په دے بِنا موږ دا ویلے شو چه د مهاجرت نه به څه موده پس هم د یادو ګروپ او پکتها ګروپ یا داسے به اووایو چه د وادئ سنده او پنجاب او د پښتونخوا د آریائي قبائیلو ژبه یوه وه.

د لته دا سوال کیدے شي چه که چرے دا هندي آرین او د پښتونخوا آریائي قبائیل یو خلق وو او د دوی ژبه هم یوه وه نو د پنجاب او سنده او د پښتونخوا د خلقو ژبے ولے بیلے بیلے دي. یا داسے به اووایو چه په پنجاب او سنده کښې د قدیم آریائي قبائیلو ژبه ولے ورکه شوه؟ د دے سوال د جواب د پاره موږ ته د قدیم تاریخ لټون پکار دے.

د موهنجو ډارو او هړپے د کشفیاتو نه دا خبره واضحه ده چه د آریاؤ د راتلو نه اول د سنده په کښځ کښې یو شاندار تهذیب او ثقافت موجود وو. د دے تهذیب حاملان یواځے په سنده کښې استوګن نهٔ وو، بلکه په پنجاب او بلوچستان کښې هم آباد وو. تر دے چه د ځنې محققینو په خیال کښې د هند په اکثرعلاقو کښې هم دغه خلق اوسیدل. د دوی یوه خاصه ژبه وه. چه اوس ورله ډراویډي ژبه ویلے شي. د محققینو په خیال کښې دا خلق د بلوچستان په لار عراق ته هم د دے خطے نه تلي دي. د دے قیاس مرسته د دے نه کیږي چه د سنده او بلوچستان د بروهي قبائیلو ژبه ډراویډي ژبه ګڼلے شي. د دے خلقو د نسل په حقله هم د محققینو خیالات مختلف دي. ځنې دوی سمیري النسل ګڼي او ځنې ئے ډراویډي. په هرحال دا ظاهره ده چه دا خلق د آریائي خلقو نه د جدا نسل خلق وو. او د دوی ژبه هم د آریائي نسل د ژبے نه بیله وه.

د آریائي قبائیلو په راتلو د آریاؤ او د دے خلقو ترمینځه جنګونه شروع شول. په دے جنګونو کښې به کله آریا بریالي وو، او کله دا خلق. به هرحال د زمانے په تیریدو سره څه

خو دا خلق په ځنګونو کښې مړه شول - ځنې د هند سبکتیځ علاقو ته لاړل - او څه په آریاؤ کښې ګډ وډ شول - د دے باهمی تعلق او تاثر په وجه څه رنګ چه په وروستو زمانو کښې د دے هندی آریاؤ مذهبي عقائد د دے خلقو د مذهبي عقائدو نه متاثر شول او په آریاؤ کښې د "شیوا" او "ماتا دیوی" پرستش شروع شو - دغه شان د آریاؤ هغه پخوانئ ژبه هم د دوی د ژبے نه متاثره شوه - او د زمانے په تیریدو سره د مینځ نه اووتله او څه مخلوطه لهجه ترینه پیدا شوه -

هندی آریاؤ ته چونکه موزون ماحول په لاس ورغلے وو - نو هرکله چه دوی د ملکی خلقو نه اقتدار ترلاسه کړو نو د پنجاب او سنده په میدانونو کښې ئے مقتدر ریاستونه قائم کړل - او د دوی تهذیب او تمدن ډیره ترقی اوکړه - په دوی کښې علوم و فنون پیدا شول - او دوی د تصنیف او تالیف د پاره یوه نوی ژبه مروج کړه - چه وروستو د زمانے په تیریدو سره د سنسکرت په نامه مشهوره شوه - او صرف یو علمی او مذهبي ژبه وه - او د اولس سره ئے څه تعلق نه وو - دغه وجه ده چه د اقتدار باوجود د دے ژبے د یو ژوندئ ژبے حیثیت اونه موندلو -

لیکن د پکتیانو دا حال نه وو - پکتیان په داسے علاقو کښې آباد وو چه هغه عموماً غرنیزے وے - د هندی آریاؤ برخلاف د دوی د علاقے جغرافیائی ماحول داسے وو چه دوی به تل د ژوند د ضرورتونو د حصول د پاره د قدرتی اسبابو او طاقتونو سره په مقابله او مجاهده کښې مصروف وو - او دوی ته به دا موقع نه حاصلیده چه دوی هم په ارام د فراغت ژوند تیر کړی او مقتدر ریاستونه قائم کړی - او علوم و فنونو ته توجه وکړی - د دوی په علاقه کښې ملکی خلق هم په ډیر شمیر کښې نه وو، ولے چه دغه علاقے په هغه زمانه کښې یا په ځنګلونو ډکے وے او یائے اکثرے حصے شاړے او غیر آباد وے. د دے جغرافیائی ملحول نتیجه دا شوه چه د دے آریائی قبائیلو هغه خپله پخوانئ ژبه خوندی اوساتله چه وروستو د زمانے په تیریدو سره د پکتها قبیلے په مناسبت ورله پکهتو (پښتو) اووئیلے شوه -

**یونانی مؤرخین:-** د رګ ویدا د شهادت نه پس د پښتو په باب کښې د یونانی مورخینو شهادتونه ډیرا اهمیت لری - په دے یونانی لیکوالو کښې د هیرودوتس شهادتونه ډیرا اهم دی - دا شهادتونه په لنډ ډول داسے دی :-

(۱) - د دارا یوش (هخامنشی باچا) له خوا د اباسیند او بحیره عرب د حالاتو معلومولو

په غرض د امیرالبحر «سکائی لیکس» په سرکردګئ کښې یو بحری مهم مقرر شو. دا بحری مهم د ښهر «کاسپتروس» نه چه د «پکتیکا» په ملک کښې واقع دے مخ په نمر خاته په سیند کښې روان شو۔

(۲) د ښهر «کاسپتروس» چه د پکتیکا په ملک کښې دے. په پوله باندے د قطب په لور څخه نورهندیان اوسی. دا خلق د ژوند په لاروچاروکښې د باختریانو په شان دی. او دوی د نورو ټولو هندیانو په نسبت زیات دلاور اوجنګیالیان دی۔

په دے حوالوکښې (۱) د کاسپتروس ښار (۲) د پکتیکا ملک (۳) هغه سیند چه سکائی لیکس پکښې د «کاسپتروس نه په نمرخاته روان شوے وو. او (۴) د کاسپتروس په پوله دقطب په لور څخه نورو هندیانو» ذکر دے چه په ژوند ژواک کښې د باختریانو په شان وو. موږ ته د دے نومونو شناخت او تعین بکار دے. اول به کاسپتروس اولټوو.

«کاسپتروس»؛ د دے ښار د شناخت په حقله د عالمانو ترمینځه اختلاف دے. د ښاغلی احمد علی کهزاد په خیال کښې د دے ښار نه مراد کابل دے. او څخه نور داسے هم شته چه هغوی ئے د جلال آباد په علاقه کښې چرته یو ښار ګڼي. ولے دا قیاسات درست نۀ معلومیږی. ځکه چه په دریائے کابل کښې نه خو د کابل په حدودو کښې او نۀ د جلال آباد په علاقه کښې کشتئ چلیدے شی. نو دا ظاهره ده چه دا ښار نۀ کابل دے او نۀ په جلال آباد کښې دے. د ښاغلی کیرو په خیال کښې د دے ښار نه مراد «پیښور» دے. دا فاضل لیکوال وائی چه دا لفظ په اصل کښې «پاسکپروس» دے او شاید چه یا په استعمال کښې او یا د هیرودوټس په لیکنو کښې په غلطئ سره د «پاسکپروس» په ځائے «کاسپتروس» لیکلے شوے وی. د خپل قیاس په مرسته کښې دا لیکوال وائی چه «پاسکپروس» د چینی لیکوال هیون سانګ د پولو، شاپولو او د سنسکرت پرشو پورا او د البیرونی د پرشا پورا یا پرشا پور سره مطابقت لری. په دے بنا د «کاسپتروس» نه مراد هم د پیښور ښار دے. او اګرچه پیښور خو عین د سیند په غاړه آباد نۀ دے. لیکن د دے ښار نه د یو څو میلو په فاصله باندے دریائے کابل بهیږی. او دا هم یقینی ده چه په دریائے کابل کښې د ورسک پورے کشتئ نشی چلیدے. نو بنا په دے دا یقین ته نزدے معلومیږی چه سکائی لیکس به د پیښور نه چرته پورته یا ښکته مخ په نمرخاته په دریائے کابل کښې روان شوے وی. او بیا به د اټک سره په اباسین ورګډ شوے وی.

د دے فاضل دا قیاس په دے وجه هم درست معلومیږی چه د کوشانیانو په دوره

کښې پلیښور د کشتۍ سازۍ د صنعت یو لوئ مرکز وو - نو دا قیاس کولے شو چه دکشتۍ سازۍ دا صنعت به په دے علاقه کښې ډیر ځنواغ وو - او د دارا یوش په عهد کښې به هم دلته دکشتۍ سازۍ کارخانې موجود دے وے - پس دا ډیره ممکنه ده چه سکائی لیکس به هم د پلیښور د خوا و شا نه دریائي سفر کړے اختیار کړے وی - او دکاسپټروس نه به مراد پلیښور وی -

(۲) **پکټیکا** :- لکه چه ظاهره ده دا لفظ د هیرو ډوټس له خوا د پښتنو (پکټیانو) د مسکن په ډول استعمال شوے دے - د دے علاقے د حدودو تعین په واضح ډول نشی کیدے - زما قیاس دا دے چه دا لفظ به د هیرو ډوټس د زمانے نه وړاندے هم په دے شکل کښې یا د دے په شان په یو بل شکل کښې مروج وو - ځکه خو هیرو ډوټس دا د پکټیانو د مسکن د پاره وئیلے دے - زما خیال دا دے چه د دے نه مراد هغه علاقه ده چه هیرو ډوټس په هغې کښې څلور قامونه ذکر کړی دی او دا علاقه دګندهارا، دادیکیا، اپاریتیا او ستاګید یا په خطو مشتمله وه - لیکن چونکه دکاسپټروس ښار په دے علاقه کښې واقع وو - او د دے ښار نه مراد پلیښور ښار دے - په دے بنا ښاغلے کیرو او ځنے نور مغربي لیکوال ګندهارا او پکټیکا د یوے خطے دوه نومونه ګڼي -

**ګندهارا = پکټیکا** :- په دے لړکښې ښاغلے کیرو وائي چه چونکه دکاسپټروس ښار هیرو ډوټس په پکټیکا کښې ذکر کړے دے - او یو بل مؤرخ او جغرافیه دان هیکا ټیوس په ګندهارا کښې - نو دا لیکوال د دے نه دا نتیجه اخلی چه ګندهارا او پکټیکا دواړه د یوے خطے نومونه دی - ولے زما په خیال کښې دا سے نه ده - یعنې زهٔ پکټیکا او ګندهارا دواړه د یوے خطے نومونه نهٔ ګڼم - بلکه دا جدا جدا علاقے دی - زما قیاس دا دے چه د پکټیکا نه مراد په عمومی ډول هغه علاقه وه چه په هغې کښې ټول پښتانهٔ استوګن وو - زهٔ د دے خپل قیاس په مرسته کښې دا وایم چه څه رنګ په هندی آریاؤ کښې د زمانے په تیریدو سره بهاراته قبیلې په نورو آریائی قبائیلو اقتدار بیا موند - او د دوی د اقتدار په وجه وروستو د هندی آریائی قبائیلو د استوګنې هغه ټوله علاقه د « بهاراته » په نوم په « بهاراته ورشه » موسومه شوه - د غه شان د پښتونخوا په آریائی قبائیلو کښې چونکه د پکهتا قبیله مهمه وه نو د خپل اهمیت او اقتدار په وجه پښتونخوا د ټولو آریائی قبائیلو د استوګنے علاقه د زمانے په تیریدو سره د « پکتها » د نوم په مناسبت په پکټیکا مشهوره شوه - او چونکه په ګندهارا کښې هم آریائی قبائیل (یعنې د پکتها یوه څانګه) آباد وو - نو په دے وجه ګندهارا هم د پکټیکا یو حصه وه - د دے نه علاوه ګندهارا یو قدیم

نوم دے ـ او دا علاقه (وادئ پیښور) په دے نوم (ګندهارا) نه صرف د هیرودوټس په زمانه کښې معروفه وه بلکه د دے نه ډیر وړاندے په ویدی زمانه کښې هم د دے علاقے دا نوم وو ـ او د هیرو ډوټس نه تر ډیرے زمانے وروستو دغزنوی دورے پورے دا نوم (ګندهارا) د وادئ پیښور د پاره په استعمال کښې مروج وو ـ پخپله هیرو ډوټس هم د دے علاقے (ګندهارا) استوګن د ګندهاریانو په لفظ دوه درے ځایه یاد کړی دی ـ د داریوش په ټولو ډبرلیکنو کښې د ګندهارا نوم موجود دے ـ لیکن د « پکتیکا » نوم نشته ـ حالانکه هغه ټولے علاقے چه نن ورځ پرے پښتانهٔ میشته دی ـ د داریوش په سلطنت کښې شاملے وے ـ دا په دے خبره دلالت کوی ، چه ،، پکتیکا ،، د یو مخصوصے علاقے یا صوبے نوم نهٔ وو بلکه په دے کښې د پښتنو د استوګنے هغه ټولے علاقے شاملے وے ـ کومے چه د صوبو یا ریاستونو په حیثیت په خپلو خپلو مخصوصو نومونو سره د داریوش په کتابتو کښې بیلے ذکر شوئ ی ـ چونکه ګندهارا هم د پښتنو د علاقے (پکتیکا) یو حصه ده ـ او د کاسپتروس ښار هم په دے خطه کښې واقع وو ـ په دے بنا هیرو ډوټس دا عموی نوم استعمال کړے دے ـ زما په خیال کښې به د هیرو ډوټس د وینا وضاحت دا سے اوشی لکه چه څوک دا سے اووائی چه ،، کاسپتروس ،، (پیښور) د پاکستان یو ښار دے ـ او د میکلیتوس مطلب به دا سے واضح شی ـ چه پیښور د سابق صوبه سرحد صدر مقام دے ـ په دواړو خبرو کښې د پیښور په محل وقوع کښې څه فرق نهٔ راځی ـ ولے د دواړو خبرو مطلب دا نشی کیدے چه پاکستان او سابق صوبه سرحد د یوے خطے دوه نومونه دی ـ

(۳) د پورته وضاحت نه دا هم ظاهره شوه چه هغه سیند چه سکائی لیکس په هغې کښې مخ په نمرخاته روان شوے وو ـ هغه سیند کیدے شی چه نن ورځ ورله د کابل سیند وئیلے شی ـ اګرچه د کاسپتروس (قیاسًا پیښور) ښار د دے سیند په غاړه واقع نهٔ دے ـ لیکن دا سیند د پیښور نه د یو څو میلو په فاصله بهیږی ـ او د پیښور نه پنځلس شپاړس میله ښکته د دے سینده سره د سوات سیند هم یو ځائے کیږی ـ دا سیند د دے نه پس دلنډی سیند په نامه مشهور شی ـ او د اټک سره په ابا سیند کښې ورګډ شی ـ دا هم ممکنه ده چه د کاسپتروس نه مراد پشکلاوتی وی چه یونانیانو د پیوکی لوتیس په نامه یاد کړے دے ـ او مراد ترنه ،، چارسده ،، ده ـ پشکلاوتی لکه چه وروستو به وضاحت اوشی د وادئ ګندهارا په قدیم تاریخ کښې یو اهم ښار وو ـ

(۴) اوس به د هغه هندیانو شناخت اوکړو کوم چه د هیرو ډوټس په دے پورته

حواله کښې ذکر شوی دی .

دکاسپتروس په پوله د قطب په لور چه کوم هندیان آباد وو . هغه د عامو هندیانو نه په تمدنی ، ثقافتی رشتو او په شجاعت او مړانګې کښې ممتاز بیان شوی دی .

د هیرو ډوټس دا عام هندیان څوک وو ؟ زما په قیاس کښې دا په هغه آریائی قبائیلو کښې دځینو قبیلو اولاد وو . چه هغه موږ په تیرو پاڼو کښې د آسانئ په خاطر د " یادو ګروپ " په لفظ یاد کړی دی . او د هیرو ډوټس په زمانه کښې د اباسیند نه په نمرخاته د ټیکسلا ، ابي سارا او " هندش " په صوبو کښې آباد وو . دا ظاهره ده چه په دے خلقو کښې د نوی ماحول او د ملکی خلقو سره د آمیزش په سبب د زمانے په تیریدو سره هغه قدیم خصوصیات تر ډیره حده تت شوی او ورک شوی وو . او د هیرو ډوټس د شهادت نه دا هم معلومیدے شی چه د دے خلقو د باختر د خلقو سره څه تعلق هم نه وو پاتے شوے او دا خبره یقین ته نزدے معلومیږی ، ځکه چه د ډیرے پخوانئ زمانے نه یعنی د هغه وخت نه چه د آریائی قبائیلو ترمینځه د وادئ سیند په غاړه چه کوم جنګ شوے وو . د هغے نه پس د هندی آریاؤ تعلق د باختر نه بیخی شلیدلے معلومیږی . په خلاف د هغه هندیانو چه د کاسپتروس په پوله د قطب په لور استوګن وو . دا خلق د هیرو ډوټس د وینا مطابق د هغه هندیانو نه چه ذکرئ پورته او شو . زیات دلاور او جنګیالان وو . او دوی د ګندهاریانو په شان د باختریانو سره په تهذیبی ، ثقافتی او لسانی رشتو کښې تړلی وو . دا خلق زما په خیال کښې په هغه آریائی قبائیلو کښې دځینے قبیلو اخلاف وو . چه موږ د آسانئ په خاطر هغوی ته د پکتها ګروپ وئیلے دے . دا یقینی ده او لکه څه رنګ چه موویلے دے وئیلی دی دے خلقو د جغرافیائی محل وقوع په وجه خپل قدیمی خصوصیات او قامی روایات محفوظ ساتلی وو . او ځکه هیرو ډوټس هم د دوی د شجاعت او مړانګې ستائینه کړیده او وروستو سکندر یونانی هم د دوی په مړانه او شجاعت قائل شوے دے . د هیرو ډوټس د دے بیان مرسته د سکندر د یونانی مورخینو د لیکنو نه هم کیږی . یونانی مورخینو دا خلق دا سپاسی ، ګوری او اساکینی په نومونو یاد کړی دی . " اسپاسی " قبیله لکه څه رنګ چه یونانی مورخین وائی د رود خواسپس (KHO.E ASPAS = رود کونړ ) په دواړو لوړو آباده وه . دا دواړه لفظونه " اسپاسی او خواسپس " دا وستائی ژبے سره تعلق لری . او د دے نه دا قیاس مرسته مومی چه دا خلق به د باختریانو سره په تهذیبی او لسانی رشتو کښې مربوط وو . ( د دے قبائیلو نور

تفصيلي ذکر به په خپله موقع اوشي).

ب :- د هيرو ډو ټس نورشهادتونه :-

هيرو ډو ټس په يوبل ځائے کښې د داريوش د سلطنت د مختلفو صوبويا رياستونو دخراج اومالئ ذکرکړے دے - په دے لړکښې هغه د داريوش د سلطنت اووم رياست په دے ډول ذکرکړے دے -

"(۱) ګندهاريان ، داديکيان ، اپاريتيان ، او ستاګيديان ټول سره اوشپږ لے شول. او دوی دمره خراج ورکړو - دا اووم رياست وو"

لکه چه مو اوليدل په دے اووم رياست کښې څلورقامونه يا قبيلے ذکر دی . او ددے رياست مخصوص نوم دے سناغلي ليکوال نهٔ دے اخستے -که چرے موږ ددے خلقو نومونو ته فکر اوکړو نو داسے معلوميږی چه ددے قبائيلو مخصوصے علاقے به هم ددوی په نومونو مشهورے وے - يعنی داسے به اووايو چه دمالئ او خراج د غرض د پاره په دے اووم رياست کښې څلورصوبے ياخطے شاملے وے يعنی ګندهارا (دګندهاريانو علاقه) - (۲) داديکيا (د داديکيانو خطه) - (۳) اپاريتيا (د اپاريتيانو علاقه) - (۴) ستاګيديا (د ستاګيديانو زمکه) . دا اووم رياست کوم يو وو؟ سناغلے کيرو اوځنے نور ليکوال دا اووم رياست دګندهارا صوبه ګڼي - ولے زما په خيال کښې داسے نهٔ ده - يعنی دا اووم رياست يوائے دګندهارا علاقه نهٔ ده - د داريوش د سلطنت دصوبوشمير د داريوش په کتباتوکښې مختلف دے - يعنی په ځنے کتباتوکښې شل ، په ځنے کښې دوه ويشت په ځنے کښے اتوويشت او د تورات په شهادت (۱۲۷) دے - د داريوش په ټولوکتبوکښې دګندهارا نوم موجود دے - او دا په دے دلالت کوی چه دا علاقه به د ډيرے پخوانئ زمانے يعنی دکوروش (کيخرو) د زمانے نه په هخامنشي سلطنت کښې شامله وه - دګندهارانه علاوه د داريوش په کتبه نقش رستم اوځنے نوروکتباتو د "ستاګيديا" صوبه هم ذکر ده . د دے نه دا معلومه شوه چه د هيرو ډو ټس په حواله کښې چه کوم اووم رياست ذکر شوے دے . په هغے کښے ګندهارا" او" ستاګيديا "خو دصوبو په ډول د دارا په کتباتو کښې هم موجودے دی . به تورات کښې د (۱۲۷) صوبو ذکر په دے دلالت کوی چه ځنے داسے علاقے هم وے چه هغه د دارا په کتباتوکښې نهٔ دی ليکلی شوی - او داخطے زما په قياس کښې دخپلوخپلو استوګنو په نومونو مشهورے وے - په دے بنا موږ دا وئيلے شو چه " داديکيا او اپاريتيا " (يعنی د داديکيانو او اپاريتيانو علاقے ) به هم انتظامی

حلق وے۔

دا ظاهره ده چه د دارا په کتباتوکښے دهغهٔ د صوبو ذکرچه په کوم ډول شوے دے۔ دهغې نه مقصد د دارا د سلطنت وسعت ، په دے سلطنت کښے د مختلفو قامونو دشمولیت او د دے په وجه د دارا دحکومت دشان وشوکت او اقتدار اظهار وو۔ لیکن هیرو ډوټس چه په کوم ډول دهغهٔ د سلطنت صوبے ظاهرےکړی دی د هغې نه مقصد د هرے صوبے د خراج او مالیۓ اظهار دے ۔ هیرو ډوټس د هرے صوبے په باب کښے دا سے وائی چه د فلانۍ صوبے خلق او شمیرلے شول ۔ او دومره خراج ئے ورکړو۔ دا خبره د فکر وړ ده چه په دے اووم ریاست کښے د هرے خطے یعنی د ګندهارا ، ستاګیدیا ، دادیکیا ، اواپاریتیا ، انفرادی ابادی دومره نهٔ وه۔ او نه د دے خطو د خلقو اقتصادی حالت دومره بهتر وو چه هره خطه ځان له یو انفرادی وحدت ګڼلے شوے وے۔ د ګندهارا ( وادۍ پېښور ) آبادی نن ورځ هم کمه ده۔ او د دے خلقو اقتصادی حالت ښهٔ نهٔ دے. نو دا یقینی ده چه د دارایوش په وخت کښے خو به د دے خطے آبادی نوره هم کمه وه ۔ او خلق به ئے په اقتصادی لحاظ سره مارهٔ پټ نهٔ وو ۔ او د معین خراج په غرض به ئے د یو انفرادی وحدت حیثیت نهٔ لرلو ۔ په دے ډول موږ د ستاګید یا په باب کښے هم دا فرض کولے شو چه د دے صوبے ابادی به هم ډیره کمه وه او د خلقو اقتصادی حالت به هم ښهٔ نهٔ وو ۔

ستاګید یا کومه صوبه وه ؟ :- دا صوبه د یونانی لیکوالو په لیکنو کښے د ست ګیدیا او د دارا یوش د نقشی رستم په کتبه کښے د تهاتاګوش په لفظ ذکرشویده او د دے لفظ ( تهاتاګوش ) تعین د سینتهی ګید یه سره منلے شوے دے۔ په کتباتو کښے دا صوبه د « اراکوزیا » او « ګندهارا » په مینځ کښے ذکر ده ۔ نو دا یقینی ده چه دا یوه شرقی صوبه ده۔ د اراکوزیا نه مراد هغه خطه ګڼلے شی چه نن ورځ د قندهارا وغزنی په علاقه مشتمله ده ۔ په دے ډول د ګندهارا نه مراد د وادۍ پېښور علاقه ده ۔ مسټرګریشمن د ستاګیدیا صوبه د اباسیند نه په قبله او د ګندهارا نه په سویل متعین کوی ۔ په دے بنا دا وئیل بے ځایه نهٔ دی چه د ستاګیدیا نه به مراد هغه جغرافیائی خطه وه چه نن ورځ د ډیره اسماعیل خان په کمشنرۍ مشتمله ده ۔ یعنی په دے صوبه کښے به د کوهاټ ، بنوں ، ډیره اسماعیل خان او وزیرستان علاقے شاملے وے ۔ او دا ظاهره ده چه د دے خطے آبادی نن زمانه کښے هم د ګندهارا نه هم کمه ده۔ او اقتصادی حالت ئې هم ښه نهٔ دے ۔

نو په هغه زمانه کښې خو به ددے خطے آبادی نوره هم کمه وه او اقتصادی حالت به ئے خراب وو۔ داخبره هم دفکر وړ ده چه کوم عالمان دستاګیدی نه مراد ختک یا شیتک اخلی هغه خلق نن ورځ هم په دے خطه کښې استوګن دی۔ دختکو قامی روایات داوائی چه ددوی اولنۍ استوګنه په کوهِ شوال کښې وه او دوی دشیتکو دمیرخیٔ له کبله دخپلے علاقے نه په هجرت مجبور شوی دی۔لوستونکو ته به دا هم یاد وی چه موږ دآریائی قبائیلو د ابتدائی مهاجرت او استوګنے په لړکښې داوئیلی وو چه هغه خطه چه په ابتداء کښې پردپکتیانو اولس میشته شوے وو۔ دابادئ په لحاظ ډیره رنګیٔ وه۔ نو ددے قیاس په رڼا کښې موږ داپاریتیا او دادیکیا په مقله هم دا فرض کوړلے شوچه ددے خطو آبادی به هم کمه وه۔ په دے بِنا داڅلور واړه خطے به دخراج دمقصد دپاره په یو وحدت کښې مدغمے کړے شوی دی۔او دے ته به اووم ریاست وئیلے شوے. وی۔که چرے دائے نۀ وے او دااووم ریاست دګندهارا ریاست وے نوبیا ددے په نوم اخستلو کښې کوم څیز مانع وو؟ غرض دپورته وضاحت په رڼا کښې دهیرو ډوټس دشهادت مطابق ددارایوش دسلطنت اووم ریاست په څلوروخطو (ګندهارا، ستاګیدیا، اپاریتیا، او دادیکیا) مشتمل وو۔ او دغه خطه دپکتیکا خطه وه۔

دګندهارا اوستاګیدیا،، وضاحت خو اوشو، ،،اپاریتیا او دادیکیا،،کومے علاقے وے؟۔

**اپاریتیا**:۔ ددے نامے ته چه کورو نو دامعلومیږی چه دا به د،، اپاریتی ،، قام داستوګنے علاقه وه۔ داپاریتی قام شناخت دموجوده اپریدی قبیلے سره منلے شوے دے۔ اپریدی قبیله نن ورځ دتیراه او خیبر په غرونو کښې استوګنه ده۔ نو موږ داوئیلے شوچه د ددے خطے نه به مراد دسپین غرچارچاپیره علاقه وه۔یا دا ئے به اووایو چه دا علاقه به په تیراه او وادی کرم مشتمله وه۔

**دادیکیا**:۔ددادیکیانو دشناخت په باب کښې په تیرو پاڼو کښې دعالمانو خیالات په وضاحت سره بیان شوی دی۔ په دے لړکښې دمستربیلو خیال دفکروړ دے۔دے وائی چه ،، دادیکی ،، هغه قبیله وه چه نن ورځ په کاکړوکښې د،، داوی ،، په نامه مشهوره ده۔

دا قیاس ډیرا هم معلومیږی۔ دپښتنو په شجرو کښې ،، داوی ،، دکاکړو یوه څانګه وه. کاکړ په موجوده پښتنو قبائیلو کښې یومهمه قبیله ده۔ په دے قبیله کښې داوی، اریي یا پنی وغیره څانګے شجرنویسو هم ذکرکړی دی۔دا نومونه ډیرپخوانی او قدیمی دی، او

د یونانی مؤرخینو بلکه تر ویده زمانے پورے رسی - په پښتنو قبائیلو کښے کاکړو سره دخپلو ځانګو دا سے اولس دے چه د هغوی ژبه او رسمونه رواجونه تر ډیره حده د نورو پښتنو قبائیلو په نسبت قدیم ذخائر زیات لری - او په دے خبره دلالت کوی چه دے خلقو خپل قدیم آریائی خصوصیات او تهذیب و ثقافت د نورو په نسبت زیات محفوظ ساتلے دے - او د دے وجه د دے خلقو د علاقے جغرافیائی محل وقوع کیدے شی یعنی په موجوده زمانه کښے هم دا اولس په دا سے علاقه کښے استوګن دے چه په هغے باندے د نورو خلقو ټګ راټګ ډیرکم دے - دا ظاهره ده چه په قدیمه زمانه کښے د شمال مغرب د لوری نه د هند په لور د ټګ راټګ مشهورے لارے د خیبر، کرم، ګومل او بولان درے وے - او دا یو طبعی خبره ده چه د دے دروخواوشا استوګن به د تلونکو راتلونکو د تهذیب نه ضرور څه لږ ډیر متاثر کیدل په خلاف د کاکړو چه دوی د عام آمد ورفت د لارو نه په یو ډډه پراته وو - په قدیم تاریخ کښے د هیرو ډوټس نه علاوه نورو یونانی مؤرخینو د دے خلقو ذکر نه دے کړے - او دا هم د دے قیاس مرسته کوی چه دا خلق به په قدیمه زمانه کښے په یو دا سے علاقه کښے استوګن وو - چه هغه به د عام شاهراګانو نه یو طرف ته وه - چونکه د هیرو ډوټس د وینا مطابق دا خلق د ګند هاریانو سره په لباس، وسله او دود دستور کښے یو شان وو - نو موږ دا وئیلے شو چه د دے دواړو اولسونو تعلق به په خپل مینځ کښے ډیر ژور وو - د دے وضاحت په رڼا کښے دا دادیکیانو د علاقے تعین په یقینی ډول ډیر ګران دے - ممکنه ده چه دا خلق د کوهِ سلیمان په زنځیری کښے چرته استوګن وو - او یا د لغمان علاقه د دوی د استوګنے مزکه وه - لیکن اکثر قرائن په دے دلالت کوی چه د هیرو ډوټس دادیکیان او د پښتنو شجره نویسو کاکړ به یو خلق وو - او د « دادیکیا » نه به مراد موجوده کاکړستان وی -

اوس به د هیرو ډوټس یوے بلے حوالے ته پام اوکړو - په دے حواله کښے هیرو ډوټس د هغه پښتنو فوځیانو ذکر کړے دے کوم چه د هخامنشی باچا زرکسیز (سنه ۴۸۰ ق - م) په مرسته کښے د یونانیانو سره جنګیدلی وو - په دے حواله کښے هیرو ډوټس دا سے وائی:

« ګند هاریانو او دادیکیانو جامے او وسلے بیخی د باختریانو په شان وے - او پکتویس (پکتیانو) پوستینونه اغوستی وو - او دوی سره خپلے وطنی غشی لیندے او پیش قوزے وے » د دے حوالے نه موږ ته دا خبرے معلومیږی :-

۱) ګند هاریان او دادیکیان په لباس او وسله کښے په خپل مینځ کښے هم یو شان وو -

او د باختریانو سره هم مشابهت لرلو -

(۲) پکتیان په خپلو وطنی جاموکښې ملبوس وو -او د دوی سره خپلې وطنی وسلې وې -
د دې نه دا څرګندہ شوہ چه ګندهاریان او دا دیکیان په پنځمه صدیٔ (ق-م) کښې
هم د باختریانو سره په تمدنی او تهذیبي روابطو کښې تړلی وو - لیکن د پکتیانو تعلق د
باختر سره شلیدلے وو -

لکه چه پورته اوونیلے شول ګندهاریان خو به دګندهارا استوګن وو او دا دیکیان به
د دادیکیا - دا پکتویس څوک وو؟ او دکومے علاقے استوګن وو؟ زما عقیده دا ده چه دا
پکتویس به هغه خلق وو چه د دے نه وړاندے موږ دهیرودوتس په حواله کښې چه
په هغې کښې دے لیکوال د دارایوش د سلطنت د اووم ریاست څلور قامونه ذکرکړی دی-
دوه قامونه داپاریتی او ستاګیدی په نومونو لیدلی دی - یعنی دا پکتویس به هغه خلق
وو چه داپاریتی او ستاګیدی په نومونو هم یاد شوی دی - او دا هغه خلق وو چه په رنګ
ویدا کښې د "پکتها" په نوم ذکرشوی دی - دا دواړه اولسه (اپاریتی او ستاګیدی) په
ژبه او د ژوند په لارو چارو کښې یوشان وو - یا داسے به اووایو چه دوی په خپلو کښې
رونړه ، ترېوران او دګندهاریانو او دا دیکیانو عزیزان وو - د دے قیاس مرسته

دهیرودوتس په حواله کښې موجوده ده - یعنی ګندهاریان او دا دیکیان په جامه
اووسله کښې د باختریانو په شان وو- یعنی د دوی زیات تعلق د باختریانو سره وو - لیکن
پکتیان په خپلو وطنی جاموکښې ملبوس وو - او دوی سره خپلې وطنی وسلے(غشی، لیندے او
پیش قوزے وے -) د دے نه دا معلومیږی چه دګندهاریانو ، دادیکیانو او پکتیانو په لباس
وسله او د ژوند په لارو چارو کښې فرق پیدا شوے وو - دګندهاریانو او "پکتیانو" ترمینځه
دا فرق نن ورځ هم موجود دے -" د برتلو په قول چه د ستاګیدیانو سره کوے وړے
وړے تورے وړاندے ذکرشوی دی - هغه به هم هغه پیش قوزے وے کوم چه هیرو
دوتس د پکتیانو سره ذکرکړی دی - د تیراه او وزیرستان پیش قوزے تراوسه پورے
مشهورے دی - او د دے خلقو د وسلے یولازمی جُزوګڼلے شی-

د پورته حوالے نه دا معلومه شوه چه د ۵۰۰ ق-م په خواوشاکښې که په یوخواد
ګندهاریانو او باختریانو ترمینځه هیڅ تعلق نهٔ وو پاتے شوے -او د دے وجه شاید چه
داوی چه د پښتونخوا په آریائی قبائیلوکښې به د "پکتها" قبیله د ټولونه اول د باختر

نه لیرې دیدلی وه او دا وجه هم ممکنه ده چه د پکتیانو د علاقې جغرافیائی محل وقوع هم په دې تعلقاتو کښې کېږې پیدا کړې وی. د ګندهاریانو او باختریانو ترمینځه تمدنی روابط د سکندر د حملې په وخت کښې هم موجود وو. او د ګندهاریانو په لهجه کښې باختری اثرات نن هم موجود دی.

تر اوسه پورې چه موږ د پښتنو د اصل په باب کښې څه اووئیل که دهغه ټولو شها دتونو خلاصه په ساده او لنډو الفاظو کښې بیان کړو نو داسې به اووایو چه -

د(سنه ۱۲۰۰ ق.م قیاساً) یا د دې نه وړاندې وروستو زمانه کښې د ارغنداب په کحتئ کښې د سپین غر چارچاپیره په وادئ کرم، وادی ګومل، وادئ کابل، ګندهارا، وادئ کونړ، وادئ تالاش، وادی سوات داباسین تر قبلئیزې غاړې پورې چه کوم خلق میشته شوی وو هغه د نسل په لحاظ سره آرین وو - دا خلق په مختلفو قبیلو کښې ویش وو چه د رګ ویدا په شهادت پنځه قبیلې وې. (یعنی "پکتها" سیوا، ویشانن، بهالانا، الینا). په دې پنځو وارو قبیلو کښې مهمه قبیله د پکتها وه. دې قبائیلو چه کومه ژبه وئیله هغه په وروستو زمانه کښې د پکتها قبیلې په مناسبت په پکهتو (پښتو) مشهوره شوه. او د دوی داستوګنې ټوله علاقه په پکتیکا (پښتیخا- پښتونخوا) یاده شوه. دا خلق وروستو یونانی مؤرخینو د خپلې لهجې مطابق د پکتویس، پکتوان، پکتین، او "پرستانې" وغیره په نومونو یاد کړی دی. او اوس د دې ټولو لفظونو نه مراد پشتون، پختون (پښتون) دې. دا ټولې قبیلې په خپل مینځ کښې په مختلفو څانګو کښې ویش وې. چنانچه د پکتها یا پکتویس په قبیله کښې مهمې څانګې داپاریتی او ستاګیدی په نامو معروفې وې. زما قیاس دا دې چه دا هغه خلق وو چه په وروستو زمانه کښې د پښتنو شجره نویسو له خوا د وصلی افاغنه او د کرلاڼي قبائیلو په نوم مشهور دی. د کرلاڼي په زیله کښې د کیرو مطابق خټک، افریدی، توری، بنګښ، بنوڅی، مروت، مسعود او وزیر قبائیل شامل دی. دا ټول قبائیل سیوا دختیکو د یو حصې نه په نن زمانه کښې هم د ګندهارا نه په سوېل علاقو کښې آباد دی. او په قدیمه زمانه کښې هم په دغه علاقو کښې میشته وو. د کرلاڼي قبائیلو په باب کښې چه شجره نویسو کومه افسانه لیکلې ده. هغه د دې خبرې غمازی کوی چه دا خلق (کرلاڼي قبائیل) د وادئ ګندهارا د موجوده استوګنو (خانبی خیل، او غوریه خیل) نه بیل خلق وو.

په کرلاڼي قبائیلو کښې د شجرو مطابق یو مهمه قبیله دله زاک هم ده چه د بابر په

زمانه کښې د هغهٔ د شهادت مطابق په وادئ ګندهارا کښې استوګنه اويو مهمه قبيله وه او اکثر قرائن موجود دي چه دا خلق (دله زاک) د غزنوي او غوري بادشاهانو په وخت کښې سم په دې علاقه (ګندهارا) کښې استوګن او ډير اهميت خاوندان وو. د شجره نويسو د خپلو رواياتو مطابق هم (خاښي خيل او غوريه خيل) وادئ ګندهارا ته د مهاجرينو په شکل کښې راغلي او د دله زاکو په اجازت د دوي په مزکو کښې ميشته شوي دي. دلته دا سوال پيدا کيدې شي چه هر کله دله زاک د کرلاڼ يوه ذيله ده نو يکاردهٔ دا خلق د خپلو نورو وروڼو ترېورانو سره هم په خپله مخصوصه علاقه کښې استوګن وې. ولې داسې نهٔ ده. د دې نهٔ دا قياس مرسته موي چه « دله زاک » هم د کرلاڼي قبائيلو نه بيل خلق وو. او شجره نويسو دوئ ځکه د کرلاڼ په ذيله کښې شامل شميرلي وي چه دوی د خاښي خيلو او غوريه خيلو نه هم جدا خلق وو. اوس سوال دا دې چه دله زاک څوک وو؟ زما قياس دا دې چه دا هغه خلق وو کوم چه يوناني مؤرخ هيرودوټس د ګندهارا استوګن او د ګندهاريانو په لفظ يادکړي دي. هم په دې ډول زما په خيال کښې د شجره نويسو يوسف زي او غوريه خيل هغه خلق دي چه د هغوي اسلاف د سکندر په وخت کښې د « اسپاسي اوګوري » په نومونو په باجوړ او د دير په علاقو کښې استوګن وو. امکان کيدې شي چه دا اسپاسي اوګوري قبائيل به په ډيرې پخوانئ زمانه کښې د دير او باجوړ د علاقو نه وادئ پيښور ته راغلي او د دله زاکو سره به په جنګونو شروع شوي وي. او د دې جنګونو په نتيجه کښې به د زمانې تيريدو څه حد دله زاک د دې علاقې نه په وتلو مجبور شوي او څه به په دې خلقو (اسپاسي اوګوري) کښې خلط ملط اوګډ وډ شوي وي.

په دې ډول د پښتنو په موجوده قبائيلو کښې څنې قبيلې اوس هم داسې موجود دي. چه د هغوي نومونه په معمولي تغير سره په رګ ويدا کښې ذکر دي. او يوناني مؤرخينو هم ذکر کړي دي. لکه په مثال کښې داوي :- پني (پښي)، واسو، پر ـ ت او برېڅ وغيره. دا ټول قبائيل د « اراکوزيا » په منطقه کښې آباد وو. د « اراکوزيا » د منطقې نه مراد هغه خطه ده چه د قندهار او غزني په علاقو مشتمله وه او په هغه زمانه کښې د کوټې علاقه هم د دې يو برخه وه. دا ټول قبائيل چه پورته ذکر شونن ورځ هم په دې خطه کښې استوګن دي. او په دې دلالت کوي چه دا خلق هم د هغه پخوانو آريائي قبائيلو اخلاف دي.

د پورته وضاحت په رڼا کښې تر کومه حده چه د پښتنو د معلوم تاريخ تعلق دې د هغې نه دا معلوميږي چه پښتون اولس په بنيادي او مرکزي ډول آرين النسل دې. ليکن چونکه

د عالمانو یو مضبوط ډله داسې هم شته چه هغوی دا خلق سامی النسل ګڼي نو پکار ده چه د دې عالمانو نظریې څخه د پښتونخوا د قدیم تاریخ پلټنه هم اوکړو او په دې لړکښې د تاریخي شهادتونو نه مرسته حاصله کړو۔

(۱) **د تورات شهادت** :- د سامی نظریې په حقله اول شهادت مونږ په تورات کښې موندلے شو۔ دا شهادت په لنډ ډول داسې دے :-

(۱) د تورات مطابق د هخامنشی سلطنت په ټولو صوبوکښې یهودیان موجود وو او چونکه د پښتنو علاقې هم د هخامنشیانو په سلطنت کښې شاملې وے۔ نو مونږ دا وېلے شو چه په دې زمکه به هم څنې سامی النسل خلق اباد وو، د دې تفصیل داسې دے :-

(۲) د هخامنشی بادشاه لراسپ (اخسویرس - زرکیسز) وزیر اعظم "مزدکی" نومیدهٔ چه یهودی وو۔ د دې مزدکی یو ترله (آستر) د دې شهنشاه منظورِ نظر ملکه وه۔ د دې بادشاه په وخت (سنه ۵۰۰) ق۔م کښې د یهودیانو خلاف په دې ډول وو۔

دغه وخت به بنی اسرائیل د یهودیانو په نامه یادیدل (آستر ۲/۵) او د سلطنت په (۱۲۷) صوبوکښې د اباسیند د غاړے نه واخلے تر ایتهوپیا (حبشه) پورے خوارهٔ وارهٔ اباد وو۔ (آستر ۳/۸) د دې خلقو (یهودیانو) د دولتمندۍ او ترقۍ په وجه ایران کښې ډیر حاسدین د دوی برخلاف په معاندانه سرګرموکښې لګیا وو۔ (آستر ۹/۸) دے خلقو (یهودیانو) به شاهي خزانے ته دومره محصول ورکولو چه د حاسدینو سردار ہامان د هغې ټکه د سپینو زرو په لس زره همیانیو (اندازاً درے کروړ روپئ) اخستی وه۔ (آستر ۳/۹) په ایران کښې دومره بنی اسرائیل موجود وو چه صرف په خاص ښار سوسن کښې په دوو ورځوکښې دوی خپل اتهٔ سوه دشمنان اووژل۔ او په ټول سلطنت کښې ئې (۷۵) زره خلق اووژل۔ او د بادشاه په رعیت کښې ډیرو خلقو د دوی (یهودیانو) مذهب قبول کړو۔ (آستر ۹/۱۱-۱۵، ۱۶)

د تورات د پورته شهادت نه دا واضحه شوه چه په هخامنشی سلطنت کښې د دارا او زرکیسز په عهد حکومت کښې یهودیان یا بنی اسرائیل موجود وو۔ دا خلق په هغه زمانه کښې ډیر دولتمند وو او ډیره ممکنه ده چه په ګندهارا کښې به هم استوګن وو۔

د پښتنو په علاقه کښې، بالخصوص په ګندهارا کښې د بنی اسرائیلو د موجودګۍ مرسته د اثار قدیمه نه هم کیږی۔

(ب) **د آثار قدیمه شهادت** :- د لاهور په عجائب خانه کښې د څوانۍ زمانے کم و بیش پنځوس داسے کتبے پرتے دی چه د هغې خطونه لا تراوسه نهٔ دی لوستلی شوی۔

او نهٔ دلوستلو کوشش شوے دے ۔ دا ټولے کتبے د مخکښنی صوبه سرحد د مختلفو علاقو نه برآمد شوی دی ۔ په دے کتباتو کښے دوه کتبے یو شان رسم الخط لری ۔ او باقی نورے یو شان خط کښے لیکلے شوی دی ۔ کومے دوه کتبے چه یو شان رسم الخط لری ۔ په هغې کښے د سامی حروفو ډیر ژور اثر ښکاری ۔ او کم نه کم نیم حروف پکښے سامی دی ۔ او په یو کتبه کښے د دارائے اول نوم او د هغهٔ القاب هم موجود دی ۔

چونکه د دے کتباتو رسم الخط او په دے کښے د سامی حروفو موجودګی په دے علاقه کښے د سامی اقوامو د موجودګۍ سره تعلق لری ۔ په دے بنا د دے تفصیل ضروری دے او ځکه زهٔ دلته د بناغلی شیخ عبدالقادر صیب (لاهور) د هغه مقالے نه ضروری ضروری اقتباسات لیکم کوم چه دے ښاغلی فاضل د لاهور میوزیم د دے زړو کتباتو په حقله په هفت روزهٔ لیل و نهار کښے خوره کړی ده[1]۔

د دے کتباتو د رسم الخط پحقله دا فاضل داسے وائی چه دا رسم الخط د یونانی او برهمی حروفو د ګډون نتیجه ده ۔ او دا بالکل ممکنه ده چه دا هم هغه رسم الخطوی چه د هغې ذکر په څلورمه قبل المیلادی صدیٔ کښے د سنسکرت مشهور زبان دان او عالم « پانینی » کړے دے ۔ پانینی د ګندهارا[2] او سیدونکے وو او هغهٔ په ګندهارا کښے د « یادانا » رسم الخط د رواج ذکر کوی ۔ د « یادانا » رسم الخط نه مراد یونانی رسم الخط دے ۔

« بوهلر » په خپله مشهوره مقاله ( INDIAN POSEAGRAPHY ) کښے د سکندر اعظم د راتلو نه وړاندے په ګندهارا کښے د یونانی رسم الخط د رواج په حقله د درے امکانی صورتونو ذکر کوی ۔ یعنی :-

(۱) په ۵۱۶ ق ۔ م کښے چه هخا منشی شهنشاه دارائے اول کوم بحری مهم د امیرالبحر سکائی لیکس په سرکردګۍ کښے د اباسیند او بحیره عرب د کشف په غرض د ګندهارا نه لیږلے وو ۔ د دے مهم په وجه به دا رسم الخط په ګندهارا کښے مروج شوے وی ۔

(۲) په ۴۸۰ ق ۔ م کښے چه د ګندهاریانو او پښتنو کومے فوځی دستے د زرکسیز (افسو یرس) شهنشاه ایران په فوځ کښے شاملے شوے او د یونانیانو سره جنګیدلے وے ۔ نو هغه وخت نه به دا خلق د دے رسم الخط سره بلد شوی وی ۔

---

[1] هفت روزه « لیل ونهار » لاهور ۔ ۳ ۔ اپریل سن۱۹۶۰ء

[2] پانینی په ګندهارا کښے د لاهور (ضلع مردان) استوګن یا دیږی ۔

(۳) تجارتي روابط هم د دے رسم الخط د ترویج و تعارف یو سبب کیدے شي.

د «بوهلر» په خیال کښې د ښځوانو مسکوکاتو نه هم دا خبره ثابته ده چه د سکندر د حملو نه اول په شمالي مغربي هند کښې یوناني حروف په څه نه څه شکل کښې مروج وو. ددهٔ په خیال کښې «پانیني» چه د کوم رسم الخط ذکر کړے دے. هغه د سکندر د راتلو نه وړاندے هغه خط کیدے شي کوم چه په ګندهارا کښې مروج وو. د پانیني شارحینو هم د «یاوانا» رسم الخط نه مراد یوناني رسم الخط اخستے دے.

چونکه یوناني آوازونو به د پراکرت (راولسی ژبے) آوازونه په پوره پوره شکل کښې نهٔ شو ادا کولے نو د دے کمی د پوره کولو د پاره د برهمی حروفو نه مدد واخستے شو. چه هغه د شیخ عبدالقادر صیب په خیال کښې د لاهور د عجائب ګهر په دے کتباتو کښې موجود دے.

د کومو دوؤ کتباتو رسم الخط چه یو شان دے او د نورو نه جدا دے. هغه ددے فاضل په خیال کښې د برهمی رسم الخط یو ډیر زوړ او ښځوانے صورت دے. په دے رسم الخط کښې د قدیم سامی حروفو ډیر ژور اثر ښکاری. او په یو کتبه کښې د دارایوش نوم هم موجود دے.

د برهمی رسم الخط د ماخذ په حقله د عالمانو یوه نظریه داده. چه دا د موهنجوډارو او هړپه د رسم الخط نه راوتلے دے. او بله عامه نظریه دا ده چه د دے ماخذ سامی رسم الخط دے.

د لاهور موزیم په دے کتباتو کښې ښځواني سامی حروف په خپل درست او اصلی شکل کښې موجود دی. او برهمی او د برهمی حروفو په شان حروف پکښې هم شته. د دے نه دا معلومیږی چه دویمه نظریه یعنی چه د برهمی رسم الخط ماخذ سامی رسم الخط دے. زیاته درسته او مستنده ښکاریږی.

په دے کتباتو کښې کم و زیات (۳۵) حروف دی. او نیم پکښې د سامی رسم الخط سره مشابهت لری. که د دے رسم الخط مقابله د جنوبی سامی ډلے یعنی د سبائی او ایتهوپی ډلے د ښځوانی صورت سره اوکړے شي. نو د دے کتباتو شپاړس حروفونه بالکل د سامی رسم الخط سره یو شان دی.

د کومو دوو کتباتو چه پورته ذکر او شو. په هغې کښې یوه کتبه نمبر ع۱۲۶ د مهابن په علاقه کښې دیوے زړے ابادۍ د کنډوالو نه اوبله نمبر ع۱۳۲ د خدو خیلو دیو کلی د کنډوالونه برآمد شوی ده.[1]

---

[1] دا دواړه علاقے د یوسف زو د منډنړو د ځانګے په علاقه کښې دی.

په دے دوا ړو کتبو کښے د سامي حروفو موجودګی او د سامي رسم الخط سره د دے قریبي تعلق د دے قیاس مرسته کوی . چه سامي رسم الخط دګندهارا په علاقه کښے مروج وو . دا رسم الخط یا خو د مشرق وسطیٰ سره د تجارتي تعلقاتو په نتیجه کښے جاری شوے وو او یا بیا دا چه سامي قامونه دلته راغلی او د دغوی په وجه دا رسم الخط په دے علاقه کښے خور شوے دے . د دے نظریۓ تائید د دے نه هم کیږی . چه په دے شمال مغربي علاقو کښے د آرامي ژبے کتبات هم موندلی شوی دی . د آرامي ژبے یوه کتیبه په ټیکسلا کښے موندلے شوی ده . او دوه کتبے د افغانستان په علاقه لغمان کښے موندلی شوی دی . او اوس اوس په قندهار کښے یو عجیبه کتبه موندلی شوی ده . چه پورتنۍ نیمه حصه ئے په یونانۍ کښے او ښکتنۍ نیمه حصه ئے په آرامۍ ژبه کښے ده . په دے علاقو کښے د آرامۍ ژبے کتبا ت موندلے کیدل دا خبره څرګندوی چه دهند په شمال مغربي علاقو کښے د نورو ژبو سره سره آرامي ژبه او دهغے رسم الخط هم مروج وو .

د دے قیاس سره چه د بائیبل د صحیفه آستر هغه شهادت هم په خیال کښے اوساتو . چه ذکرئے وړاندے شوے دے او د دے قسم نور شواهد هم اولټوو نو دا خبره صفا معلومیږی چه یهودیان هم د هغه قامونو یو قام وو کوم چه د پاکستان په شمال مغربي علاقو کښے وارد شوی وو . دا خبره خو ثبوت ته رسیدلی ده چه د شمالي هندوستان او ګندهارا مشهور رسم الخط خروشتي چه کم وزیات اتۀ سوه کاله په دے علاقو کښے مروج وو . د هغے ماخذ او مخرج ارامي رسم الخط وو . د دے نه دا هم معلومیږی چه د دے شمال غربي علاقو اوسټوګنو یهودیانو ژبه آرامي وه . او د هغوی رسم الخط فینقی ، سبائی او ارامي وو .

د لاهور میوزیم د قدیم نامعلوم رسم الخط دا دواړه کتبے د فینقی یا سبائی رسم الخط سره ژور تعلق لری . د ټیکسلا ، لغمان او قندهار کتبات په آرامۍ ژبه کښے لیکلے شوی دی . دا نظریه چه ارامي ژبه به د ایراني شهنشاه دارائے اول د فتوحاتو له کبله په دے علاقو کښے خوره شوی وی . درست نۀ معلومیږی ځکه چه د دارائے اعظم د مغربي صوبو ژبه آرامي وه . او د هغۀ د مشرقي صوبو سرکاری ژبه زړه فارسي وه چه په میخي رسم الخط کښے به لیکلے شوه او دا ظاهره ده چه د څوانی هند شمال مغربي علاقے یعنی ټیکسلا او ګندهارا وغیرہ دایرانی سلطنت په مشرقي صوبو کښے شامل وے او د دے صوبو سرکاری ژبه زړه فارسي[۱] وه . نو له

---

[۱] د دارائے اعظم هغه کتبه چه په هغے د پښتو ژبے درے مصرے معلومے شوی دی . هغه هم په میخي رسم الخط کښے لیک ده .

دے کبله هندو دا سوال نهٔ پیدا کیږی چه په دے علاقو کښے به ارامی ژبه دسرکاری خط وکتابت په غرض جاری شوی وی۔

په ګند هارا او د شمال مغرب په نورو علاقو کښے د ارامی ژبے او رسم الخط د ترویج نه دا صفا معلومیږی چه سامی قامونه په دے علاقو کښے استوګن وو۔ دا خبره هم معلومه ده چه داراۓ اعظم د آرامی ژبے یولوئے سرپرست هم وو۔ نو د هغهٔ په وخت کښے به آرامی ژبے او دے رسم الخط ته دهند په شمال مغربی علاقو کښی د خوریدلو زیاتهٔ موقع حاصله وے۔

په کتبه ع۱۲۶ کښے چه د داراۓ اعظم نوم په قدیم نامعلوم رسم الخط کښے لیک دے هغه د فاضل پروفیسر شیخ عبدالقادر د تحقیق مطابق داسے دے :-



سا دا را دا تها نا ګا جاجا لا

دګس لوری نه به دښی لور په طرف داسے وئیلے شی:

او دښی لوری نه به ګس لوری ته داسے وئیلے شی:

لا ۔جاجا ګا نا تها دا را دا سا

او په پښتو ژبه کښے به ئے معنیٰ داسے شی :- لاجا = ( راجا = بادشاه ) ‹‹جاګا = رنړیٔ ۔ دینا ›› ، ناتها = ( بادار ۔ مالک ) ، دارا داسا = ( دارا داشا = دارایوش ) ، یعنی د نړیٔ (دنیا) بادار (مالک ) دارا داش ( دارایوش ) ۔

په ایران کښے چه د داراۓ اول کوم کتبات موندلی شوی دی په هغې کښے هم د داراۓ اعظم نوم ‹‹ دارا یا داش ›› ، شاه اعظم ، شاه شاهان ، شاه ولایات معمورهٔ عالم راغلے دے ۔ په فارسی مهرونو کښے هم د دارا نوم دارا یا داش او په بائیبل کښے دارا یا دیش لیک دے ۔ په پورته کتبه کښے ‹‹ دارا داسا ›› لیکلے شوے دے ۔ او مطابقت ئے واضح دے ۔ په پورته کتبه کښے د دارا خطاب ( جاګا ناتها = د نړیٔ بادار ) د نقش رستم په کتبه کښے د دارا د خطاب سره هم مطابق دے ۔ په دے کتبه کښے د ( راجا ) لفظ په ( لاجا ) لیکلے شوے دے ۔ د اشوک په کتباتو کښے هم د ( راجا ) په ځائے ( لاجا ) لیکلے شوے دے ۔ د دے نه دا معلومیږی چه په پراکرت کښے به د ( ر ) په ځائے ( ل ) استعمالیدو ۔

د نقش رستم په کتبه کښې دارا وائی چه د نورو ملکونو نه علاوه زهٔ د گندهارا او مندش هم حکمران یم۔ او دا یو تاریخي حقیقت دے چه د هند شمال مغربي علاقه د ایرانی سلطنت یوحصه وه۔ ولے په دے علاقه کښې د دارائے اعظم د زمانے کتبه نه وه موندلی شوی۔ او دا وړومبئ کتبه ده چه د قدیم گندهارا د هغه علاقے نه راوتلی ده چه نن ورځ پکښې د یوسف زو قبیلے مندنړ څانگے ابادے دی۔ په دے کتبه کښې د دارا نوم هم هغه شان دے څه رنګ چه د دارا په نورو کتبو او بائیبل کښې راغلے دے۔ د پښتنو په تاریخ کښې د دے کتباتو اهمیت په دے وجه زیات دے چه په دے کتباتو کښې سامی حروف موجود دی۔ د دارا په زمانه کښې مونږ د هیرودوتس د څلے نه د پښتنو نوم د "پکتویس" په لفظ هم اوریدلے دے۔ او د دے قام د څنې قبیلو او علاقو نوم و نه موهم اوریدلی دی نو په دے کتباتو کښې د سامی حروفو موجودګی او د سامی رسم الخط سره د دے قریبی مشابهت او یکسانیت د دے قیاس مرسته کوی۔ چه په دے علاقو کښې به سامی قبائیل هم استوګن وو۔

(ج) **د تورات نور شهادتونه** :- لکه چه د اسرائیلی نظریے په لړ کښې مو دا خبره ښیلی ده۔ د آسوری باچا سلمان سار (۷۲۱ ق۔م) له خوا د اسرائیلی سلطنت صدر مقام "سماریه" محاصره شوے وو۔ او د دے باچا د لاسه بنی اسرائیل جلا وطن شوي او د "مادا" (میډیا) په علاقه کښې آباد کړے شوی وو۔ او د دے اسرائیلی قبائیلو په ځائے نورقبائیل د آسوری باچا په حکم په اسرائیلی علاقو کښې استوګن کړے شوی وو۔ دا ډیره ممکنه ده چه د غه جلاوطن اسرائیلی قبائیل به د خراسان په مختلفو علاقو کښې خواره شوی او اباد شوی وی۔ دلته که مونږ د پښتنو په باب کښې هغه نظریه هم په خیال کښې اوساتو چه د هغې له مخه پښتانهٔ د "بی بی تورن" اولاد ګڼلے شی۔ د دے نظریے مطابق دا سامی قبائیل د توران په علاقه کښې آباد شوی وو او د توران په علاقه کښې آباد شوی وو۔ او د توران نه مراد هغه علاقه ده چه یونانی لیکوالو د میډیا په لفظ یاده کړی ده۔ د دے نه دا معلومیږی چه په قدیمه زمانه کښې د ایران په قطبی قبلئیزه علاقه کښې سامی قبائیل د ایران د مشرق په لور هم غزیدلی وو۔

(د) **نور شهادتونه** :- (۱) په اسلامی دوره کښې د خراسان په علاقو کښې د سامی قبائیلو د ابادئ په حقله اول شهادت په حدود العالم من المشرق الی المغرب (تالیف د ۳۷۲ هـ) کښې موجود دے۔ د دے کتاب مطابق "گوزگانان"[1] د یهودیانو مرکز وو۔ دا

---

[1] گوزگانان د اوسنئ میمنے په حدودو کښې وو۔

خلق پونده وو ـ او د خراسان او نورو ساهي خلقو سره خواره وارهٔ پراتهٔ وو ـ هم په دے ډول د آريائي نظريئ يو سرګرم مرستيال ښاغلے حبيبي په خپل کتاب «ادبيات پښتو» کښې داسے وائي چه مسټر فولانګ (سن۱۸۹۷ء) نومے يو عالم داسے ليکلي دي چه د سِير يا (شام) يو باچا ديهوديانو ډير قبائيل دبيت المقدس نه د خراسان خوا ته شړلي وو ـ دايهود د سن۶۳۰ ق ـ م په خواوشا کښې د باختر او هرى رود په خواوشا کښې استوګن وو ـ

دا ښاغلے وړاندے وائي چه د اسلام په وړومبئ دوره کښې په بلخ ، هرات او نورو ښارونو کښې څنې يهودا وسيدل ـ د دے نه دا قياس مرسته موهي چه څه رنګ په دے پورته ښارونو کښې يهود آباد وو دغه رنګ به په ګندهارا او نورو علاقو کښې هم استوګن وو ـ

(۲) د ګندهارا په علاقه کښې دځنې علاقو نومونه نن ورځ داسے موجود دي چه هغه د بني اسرائيلو په علاقه کښې هم موجود وو ـ مثلاً «سدوم» د يوسفزو (مندنړو) په علاقه کښې د يو خاصے خطے نوم دے ـ په دغه نامه د بني اسرائيلو په ملک کښې هم يو ښار وو چه د حضرت لوطؑ قوم پکښې استوګن وو ـ د تورات په شهادت د «سدوم او عموره» ښارونه د ګوګړو او اور په باران تباه شوي وو ـ د اثرى اکتشافاتو د نتائجو په رڼا کښې دا ښارونه (سدوم او عموره) په سن۱۹۰۰ ق ـ م کښې تباه شوي وو ـ د يوسف زو په علاقه کښې د سدوم نامه د دے قياس مرسته کوي چه په قديمه زمانه کښې به ساي قبائيل دے علاقے ته راغلي وي ـ دغه رنګ د پيښور په علاقه کښې د «خيبر» نامه هم د دے قياس مرسته کوي ـ

(۳) کوم ليکوال چه د پښتنو په باب کښې د اسرائيلي نظريئ مرسته کوي هغوي يوسف زي قبائيل په لباس او شکل و شباهت کښې هم د بني اسرائيلو سره يکسان ثابتوي ـ په دے باب کښې ښاغلے مير افضل خان جدون (مرحوم) چه د اسرائيلي نظريئ يو سرګرم مرستيال دے ـ په خپل يو مضمون کښې د نورو خبرو نه علاوه داسے وائي «دافغانانو شکل و صورت او عادات و خصائل د بني اسرائيلو په شان دي ـ د کولاني او متي قبائيلو نه علاوه تناولي ، سواتي ، يوسف زي ، جدون وغيره ټولے قبيلے په خپل سست ، کشاده او ارت بيرت لباس کښې بيداو د اسرائيليانو په شان ښکاري ـ هم په دے ډول د دے خلقو د غوږونو سره غټے غټے پريښو دل هم د دوي د اسرائيليت يوه نښه ګڼلے شي ـ[۱]

(۴) ښاغلي سيد عبد الجبار شاه په خپله يو رساله «ملت افاغنه يا بني اسرائيل» کښې

---

[۱] اتحاد افغان جنوري سن۱۹۷۱ء

او نبا غلی قاضی عطاء الله خان مرحوم په خپل تاریخ پښتون کښې دا خبره هم لیکلې ده چه څنې مغربي لیکوال[1] وائي چه کوم وخت نادرشاه افشار په هند باندې د حملو کولو په غرض پلینبور ته راغی نو د یوسف زو مشرانو هغهٔ د تورات یوه نسخه پیش کړه چه په عبرانۍ ژبه او په عبرانی رسم الخط کښې لیکلې وه - او داسې نورڅیزونه ئې هم پیش کړل - چه هغه یهودیانو د خپل عبادت په وخت کښې استعمالول - او د نادرشاه په فوځ کښې چه هغه وخت کوم یهودیان موجود وو هغوی د دې څیزونو او تورات تصدیق اوکړو -

غرض په دې ټولو شواهدو باندې د غور کولو نه پس دا قیاس بې وزنه نهٔ معلومیږي چه په قدیمه زمانه کښې به سامي قبائیل هم د پښتنو په زمکه میشته شوي وي - او د پښتنو په څنې قبائیلو کښې به د سامي النسل آمیزش اوګډون شوې وي - ولې دا خبره په وثوق سره وئیل ګران دي چه سامي النسل قبائیل په کومو علاقو کښې میشته شوي وو یا په کومو قبائیلو کښې به د سامي نسل آمیزش شوې وي - د دې په حقله چه هرڅه وئیلې شي هغ ته د قیاس نه سوا د نورڅه وئیلو جرأت نشي کیدې - او زهٔ هم خپل قیاس ظاهروم.

لکه چه وړاندې اوو ئیلې شول - آرامي ژبه او آرامي رسم الخط د یهودیانو سره مخصوص وو - او د پښتنو په علاقه کښې د آرامي ژبې کتبات د ټیکسلا، ګندهارا، لغمان او قندهار په علاقو کښې موندلې شوي دي - د ټیکسلا او لغمان علاقې هم په قدیمه زمانه کښې په وسیعه معنیٰ کښې په ګندهارا کښې شاملې ګڼلې شوې - د ګندهارا علاقه د خپل جغرافیائي محل وقوع په وجه په قدیم تاریخ کښې ډیره اهمه وه - د دې علاقې دا اهمیت د دارا په ټولو کتباتو کښې د دې خطې په فخریه طور ذکر نه څرګند دې - د غه شان د قندهار علاقه چه د دارا په کتباتو کښې "اراکوزیا" په نامه ذکر ده - په قدیم تاریخ کښې ډیر اهمیت وړه ده - د پښتنو خپلو شجره نویسو چه د اصلي افاغنه (یعنی سامي النسل) په نامه د کومو قبائیلو ذکر کړې دې هغه ټولې قبیلې د اوسني قندهار او وادئ پښین په علاقو کښې استوګنې دي - نو موږ دا قیاس کولې شو چه په دې دواړو علاقو کښې به سامي قبائیل میشته

---

[1] د دې دواړو فاضلانو د هغه مغربي لیکوالو نومونه او کتابونه نهٔ دي ذکر کړي چه د هغ نه د دوی د دې قول تصدیق اوکړې شي - که چرې واقعي دا قول ریښتیاوی نو دا به د ګندهارا په علاقه کښې د سامي قبائیلو د آبادۍ یو قوي شهادت وي -

شوی وی ـ او ددے علاقو د آریائی پښتنو وینه به د سای نسل نه متاثره شوی وی ـ او زما په خیال کښے یوائے د سای قبائیلو نه نه بلکه ددے علاقو د پښتنو وینه به د هغه ټولو حمله آورو قامونو نه متاثره شوی ده کومو چه د تاریخ په مختلفو دورونو کښے د هند په لورحملے کړی دی ـ او د ګندهارا علاقه د هغوی د حملو اوله مورچه وه ـ

اوس به د هغه نورو قامونو په لنډ ډول جاج واخلو د کومو سره چه د پښتنو په مختلفو دورونو کښے تعلق پاتے شوے دے ـ په دے لړکښے اول ایرانیان دی چه د پښتنو سره ئے یو اوږد تعلق پاتے شوے دے ـ

(ه) :- دا یو تاریخي حقیقت دے چه د هخامنشي دورے د آغاز (۵۵۸ ق ـ م) نه پس د پښتنو ټوله علاقه په شمول د ګندهارا د ایرانی سلطنت یو مقبوضه وه ـ او دا علاقے تقه دوه سوه کاله پورے د ایرانی سلطنت حصے وے ـ ایرانیان پخپله هم آرین النسل وو ـ ددوؤ سوو کالو په دے اوږده زمانه کښی د ایرانی نسل او تهذیب وتمدن نه د پښتنو نسل وتهذیب و تمدن او ژبه متاثرکیدل یو طبعی خبره ده ـ د ایرانی تهذیب وتمدن د اثراتو جرے ددے علاقو د خلقو په تهذیب وتمدن او ژبه کښے دومره ژورو ته رسیدلے وے چه تراوسه دا اثرات د پښتنو په ژبه او تهذیب وتمدن کښے څرګند دی ـ

(و) :- د ایران هخامنشي سلطنت د سکندر یونانی د لاسه تباه شو او په هندوستان باندے د سکندر د حملے په وجه د پښتنو وطن هم ددے حملے نه متاثر شو ـ په دے علاقو کښے سکندر ځائے په ځائے فوځي چاوڼۍ اباد ے کړے وے ـ او په هغه کښے یونانی فوځیان استوګن کړی وو ـ ددے نه علاوه د سکندر د حملے په وجه په هندوستان کښے چه کوم سیاسي تبدیلۍ واقع شوے هغه ډیرے دوررسے وے ـ او د هغ نه د پښتنو علاقه هم متاثره شوه ـ

(ز) :- سکندر د وفات نه پس ډیر زر د کوه هندوکش د جنوبي لنو پورے د هند د موریا سلطنت قبضه خوره شوه ـ او د ایرانی سلطنت مشرقي صوبے (لکه «اراکوزیا»، جِدرو شیا، ګندهارا او ستاګیدیا وغیره) ددے سلطنت حصے اوګرزیدلے ـ په دے علاقو د موریا سلطنت دا قبضه تقریبًا سل کاله وه ـ د هندیانو ددے سل کلنے قبضے په نتیجه کښے د پښتنو تهذیب وتمدن او ژبه د هندی ماحول او خصوصیاتو نه متاثر کیدل یو لازمي امر وو ـ د بده مذهب د توسیع او ترقۍ په لړکښے د اشوک د مخلصانه کوششونو په نتیجه کښے د بده مذهب لمن په دے خطے هم راخوره شوه ـ او دا علاقے په اول وار د بده مذهب سره متعارفه شوے ـ په دے ډول ددے علاقو خلق په اعتقادی لحاظ سره په دوؤ مذهبی

د لوکښې ویش شول - یعنې ځنې د قدیم زردشتي مذهب پیروکار پاتې شول او ځنو د بدها فلسفه د مذهب په ډول قبوله کړه - د بدهائي او زردشتي مذاهبو مخښې نښانې د پښتنو په علاقه کښې ځائې په ځائې موندلے شي او داشوک د زمانې یادګیرنه کوي -

(ح) - - - د موریا سلطنت په زوال په باختر کښې د یونانیانو یو نوے سلطنت قائم شو چه ډکندهارا او د مغربي پاکستان اکثره حصه پکښې شامله وه - د باختر د اوږ دے استوګنې په وجه ددے یونانیانو وینه او نسل د ایرانیانو د نسل او ږ ینې نه دومره متاثر شوے وو چه عملاً دوی د باختر خلق ګرځیدلے وو - د یونانیانو دا سلطنت کم و بیش سل شپږ شلے کاله د پښتنو په علاقه قائم وو - د یونانیانو او پښتنو د دے اوږ د تعلق په نتیجه کښې د یوناني تهذیب او وینې نه د پښتنو د تهذیب او وینه تر څه حده متاثر کیدل هم یو بدیهي خبره وه - دغه وجه ده چه کوم خلقو ته د پښتنو په شکل و شباهت کښې یوناني خط و خال ځرګندیږي - یا د دوی په تهذیب کښې ورته د یوناني تهذیب مخښې نښانې ښکاري - هغه هم ددے دور یادګار دے -

(ط) :- د باختري یونانیانو نه پس په هند باندے د مختلفو قامونو د تاخت و باخت یوه داسے سلسله شروع شوه چه د دنیا په تاریخ کښې به ئې شاید چه مثال موندل ګران وي - د خپل جغرافیائي محل وقوع په وجه د پښتنو علاقې بالخصوص وادي کابل او ګندهارا ددے حمله آور قامونو په اولنی زد کښې وے - او ددے حملو نه به اول هم دا خلق متاثر کیدل - دا ټول حمله آور قامونه لکه ساکا، پارتین او کوشانیان وغیره د نسل له مخه ایراني النسل وو - اګرچه دوی خاص د ایران اوسیدونکی نهٔ وو او د خانه بدوشۍ ژوند به ئې تیرولو - ولے د دوی د نسل په قله د اکثروعالمانو دا خیال دے - چه نسلاً دا خلق ایرانیان یا نیم ایرانیان وو - دا ټول قامونه د پښتنو په زمکه میشته شول او د زمانې په تیریدو سره په دے خلقو کښې جذب شول -

(ی) :- د پنځمې صدۍ میلادي په آغاز کښې په هند باندے د وسطی ایشیا یو بل خونړے قام حمله آور شو - دا خلق د سپین پوستي هُنز په نامه مشهور دي - او نمیاطله ورله هم وئیلے شي - اګرچه د هند په زمکه د دوی اقتدار ډیره موده قائم پاتے نهٔ شو - لیکن د خپل لنډ کتله اقتدار باوجود هم دوی په هند کښې د راجپوتو په شکل کښې خپل یادګار پریښودلے دے - لیکن د باختر او افغانستان په نورو حصو کښې د دوی غلبه تر ډیرے مودے قائمه وه - دا خلق د نسل له مخه په اکثرو احتمالاتو ترک وو - اګرچه ځنے عالمان دوی د سیتي قبائیلو یو

ښاخ ګڼي - او په حقیقت کښې "ترک" هم د سیتي قبائیلو یو ښاخ وو- په دے لحاظ نسلاً آرین یا نیم آرین ګڼلے شي - د هیاطله قام یوه غالبه برخه د "ګوجرو" په نامه مشهوره وه- چه اوس د ګوجرو په نامه مشهور دی - دا (ګرجر یا ګوجر) د اصلي هیاطله قام فقیر نامه خلق وو- د پښتنو په ټوله علاقه کښې با لخصوص په غرنیزو علاقو کښې نن ورځ هم په زرګونو ګوجر آباد دی او د هیاطله د زمانے یادګیر نه کوی د کنډهارا په پښتنو کښې په واضح ډول د اصلي هیاطله قام څښے ښکارنده نشته - البته د پښتنو غلجي قبائل د اکثرو عالمانو په خیال کښې هم د دے هیاطله ؤ اخلاف ګڼلے شي - (د دے په حقله به نور تفصیل د غلجیانو په لړ کښې اوشي -)

دا ټول قامونه چه ذکرئے پورته اوشو- د پښتنو په دے زمکه میشته شوی وو- ولے پښتنو دا خلق په خپل ځان کښې داسے جذب کړل چه د دوی انفرادیت ئے ختم کړو[1]- او نن ورځ د دے قامونو څۀ لږ ډیر افراد هم په خپل قامي او قبیلوی نومونو څښے نۀ شي پیژندلے کیدے. اګرچه د دے قامونو څښے ښکارنے د پښتنو په خط وخال او د دوی دودونه دستورونه د پښتنو په دودونو دستورو کښې ښکاره لیدلے شي -

(ک) :- د اوومے صدئ میلادی په حوالو شا کښې د پښتنو علاقه د هندو شاهانو په قبضه کښې راغله - دا هندو شاهان د نسل له مخه د کشن افتالیت مخلوط النسل خلق وو د دوی دا قبضه دیولسمے صدئ میلادی د آغاز پورے قائمه وه - د هندو شاهانو په دے اوږده زمانه کښې په هند باندے د قبلے دلور نه په داسے لویه پیمانه څه حملے نۀ دی شوی چه د هغو په وجه د ملک په استوګنو کښې څه لوئے انقلاب راغلے وے - په دے وجه د پښتنو په وطن کښې به خلقو ته داموقع په لاس ورغلي وی -چه د تیرو حملو په وجه چه کوم کوم قبائل د خپلو خپلو علاقو نه بے ځایه شوی وو- هغوی بیا په مستقل ډول په خپلو خپلو علاقو کښې آباد شي - د دے سکون او امن په نتیجه کښې به د مختلفو قامونو د خلقو ترمینځه داختلاط او آمیزش موقع هم پیدا شوی وی -او مختلف خلق به د یو بل سره په سماجي او اولسي تعلقاتو کښې ګنډلی شوی وی.

(ل) :- داخبره هم د فکر وړ ده چه د بني امیّه خاندان د خلافت په دوران کښې سامي

---

[1] هرکله چه یو فاتح قام په شمیر کښې د مفتوح قام نه کم وی نو هغه په مفتوح قام کښې بالکل ورک شي- (تمدن عرب) -او دا ظاهره ده چه داحمله آور قامونه به یقیناً د ملکي خلقو (پښتنو) نه په شمیر کښې کم وو-

النسل عرب هم په ډیرشمیرکښې دافغانستان په مختلفو حصوکښې استوګن شوی وو- د زمانې په تیریدو سره دے عربو هم د پښتنو تهذیب او تمدن خپل کړو- په پښتنو قبائیلو کښې د سادا تو او نورو ستانه دارو کورنیو موجودګی د دے قیاس مرسته کوی چه د دوی اسلاف به هغه سامی النسل عرب وو کوم چه د تبلیغ دین په غرض په دے خلقو (پښتنو) کښې استوګن شوی وو - او د خپلې پرهیزګارۍ او دین دارۍ له کبله به په پښتون اولس کښې د خاص عزت او احترام خاوندان وو۔

(م) :- د دیارلسمې صدۍ په آغازکښې د چنګیزخان د تهاجماتو په نتیجه کښې د افغانستان د بعضې علاقو په خلقوکښې د زیږ نسل ګډون هم اوشو- د منګولی نسل نخښې نښانې د هزاره جات په خلقوکښې څرګندے لیدے شی۔

(ن) :- اوس چه په دے ټولو خبرو غور اوکړے شی- نو دا وئیل به بے ځایه نه وی چه پښتون قام په بنیادی طور د آریائی خلقو سباخ دے - ولے وروستو د تاریخ په مختلفو دورونو کښې په دوی کښې نه صرف د سامی نسل ګډون شوے دے بلکه د هغه ټولو حمله آورو قامونو وینه هم ترڅه حده په دوی کښې ورګډه شوی ده- کوم چه د پښتنو وطن ته راغلی او په دے مزکه ډیره شوی وو- ولے دا ټول خلق پښتنو په خپل ځان کښې داسے جذب کړل چه اوس ئے انفرادیت ختم شوے دے - د پښتنو قبائیلو د وګړو په قد قامت، رنګ ځېژ ، د مخ په کاسو ، خوئ خصلت ، دودونو دستورونو اوکړه وړه کښې د آریائی، سامی یونانیانو ، منګولو او ترکانو څه ناڅه نخښې نښانې څرګندے موندلے شی- او د دوی په ژبه کښې ځنے داسے لفظونه او د دوی په تهذیب وتمدن کښې ځنے دستورونه او رسمونه رواجونه داسے هم دی چه هغه د دے پورته ذکرشوو قامونو د نسلونو او تهذیب و تمدن سره د دے خلقو (پښتنو) ژور تعلق څرګندوی- او دا د دے خبرے ثبوت دے چه د پښتنو او د دے قامونو ترمینځه یو اوږد تعلق پاتے شوے دے - او دا د هغې نتیجه دی-

دا خبره هم د فکر وړ ده چه د هغه پښتنو نسل زیات مخلوط شوے دے - کوم چه میدانی علاقو استوګن وو - او د حمله آورو قامونو په زد کښې وو- ولے ترڅو مره چه د غرنیزو او دشوارګذارو علاقو د استوګنو پښتنو تعلق دے - د هغوی نسل نسبتاً خالص او په خپل حال پاتے شوے دے- یا د شجره نویسو په الفاظو کښې به داسے اووایو چه د سړبن د اولاد د نسل نسبتاً زیات مخلوط شوے دے - او د کرلانړ د اولاد نسل تر ډیره حده په خپل اصلی او قدیمی حال پاتے شوے دے-لیکن:

دا حال یواځې د پښتنو نۀ دے۔ بلکه د ټولو یورپي او ایشیائي قامونو نسلونه هم مخلوط شوی دی۔ تر دے چه ن ورځ د دنیا په مخ یو قام هم داسے نشته چه نسل به ئې خالص پاتې شوے وی۔ او نۀ ددے توقع کیدے شی۔ د دنیا د هر قام په نسل کښې د هغه قامونو د نسلونو ګډون شوے دے۔ دکومو سره چه ئې اوږد او ژور تعلق پاتې شوے دے۔ لکه په مثال کښې په یورپي قامونو کښې به فرانسیسی قام واخلو۔ اګر چه دا قام په ظاهره کښې یک جنسی او متحد الاجزا معلومیږی لیکن په حقیقت کښې په دے خلقو کښې د هغه ټولو قامونو آمیزش شوے دے۔کومو چه په دوی حملے کړے وے. لکه سمبری، نارمن، سلټ، اګی تن او رو میان وغیره۔ دغه حال د عرب قام هم دے۔عرب قام اګرچه په وسیعه معنیٰ کښې متحد الاصل او سامی النسل دے لیکن په دوی کښې هم د مختلفو اقوامو اختلاط او آمیزش شوے دے لکه په مثال کښې د فینق ، بربری ، ترک، عبرانی، ایرانی ، یونانی او رومیان وغیره ۔ دا ټول قامونه څه لږ ډیر په عربو کښې ورګډ شوی دی۔او ددوی نسل ئې متاثر کړے دے۔

لیکن د آمیزش اوګډون باوجود یو قام په هغه نامه یادیږی چه دکوم نسل حصه په هغې کښې غالبه وی۔ په دے بنا زما په خیال کښې پښتون قام ارین النسل دے اوګڼل ئې پکار دی۔ او ددے وجوهات دا دی :۔

(۱) ددے خلقو (پښتنو) ژبه د آریائي ژبو دکورنۍ یوه ژبه ده۔ په علمی او تاریخي دلائلو او شواهدو دا خبره منلی شوی ده چه پښتو ژبه که د "سنسکرت" او "زند" مور نۀ ده نو خور خو ئې ضرور ده۔ (زما په خیال کښې دا ژبه د سنسکرت او زند دواړو ژبو نه څوانۍ ده۔) په دے بنا دا هم دومره قدیمه او څوانۍ ده څومره چه د وید او اوستا ژبې څوانۍ کیدے شی۔ ولے د بده مرغه د ویدی او اوستائي زمانې پښتو (ژبه) خو معلومه نۀ ده چه څه رنګ به وه ولے په تاریخي زمانه کښې څه رنګ چه د هخامنشیانو په دوره کښې د پښتون قام ذکر یونانی مؤرخینو کړے دے۔ دغه شان د دارائې اول په کتبه بهستون کښې د پښتو ژبې یو درے مصرعے هم موندلی شوی دی۔ او دا د پښتو ژبې وړومبۍ نمونه ده۔ چه په میخی خط کښې د دارا په کتبه کښې موجوده ده۔ دا مصرعے په دے ډول دی۔

د دارایوش اعظم د ډبرلیک بهستون د یوے حصے عکس:

اصل ډبرلیک :۔

(۱) < ۲۲۲ =<:۲۲۲< [۲ ≡] ۲ ۲۲ ≡ ۲۲۲< -<۲۲ ۲۲< =
(۲) < ۲۲۲ - <=< ۲۲۲< <=۲۸ -۲ ≡ ۲۹< - <۹۲ ۲۲< =
(۳) < ۲۲۲- <= <۲۲۲< ۲≡ - ۲۹≡ ۲-< ۲--۹<-<۲ ۲۲<=

ترجمه ۱-

(1) NAIY A RAI KA Ā HAM
نے ا ری کہ آ ھم

(2) NAIY DRAU JA NA Ā HAM
نے درو جہ نہ آ ھم

(3) NAIY ZUR(A) KA RA Ā HAM
نے زور(ہ) کہ رہ آ ھم

د بناغلی حبیبی د تحقیق مطابق دا درے وارہ مصرعے د پخوانئ پښتو مصرعے دی چه هره مصرعه شپږ بنده لری ـ او د پښتنو ژبے سره د دے مطابقت دا سے کیدے شی

(۱) نے اریکه هم (ومه) یعنے نه اریکه وم (ومه)
(۲) نے دروجنه هم (ومه) " نه دروه جن وم (ومه)
(۳) نے خورکړه هم (ومه) " نه څو کړونے وم (ومه)

د دارا یوش د بغستان (بهستون) دا ډبرلیک په ۲۰۰ کرښو مشتمل دے، په هره کرښه کښے (۳۵) توری دی ـ او هر توری ـ ئے د دریو نه تر پنځو پورے میخی علامات لری. دغه شان ټول ډبرلیک په ۵ ۷ میخی علاماتو مشتمل دے. په دے ډبر لیک کښے دارایوش د خپل سلطنت کارنامے بیان کړی دی ـ او د خدائے پاک حمد وثنا او د صداقت، راستئ او عدالت ئے ستائینه کړی ده ـ او د دروغو او ناپاکئ نه ئے د بیزارئ اظهار کړے دے ـ دا پورته مصرعے د دے ډبرلیک په څلورمه ستن او د یارلسم بند کښے راغلی دی ـ

په دے ډبرلیک کښے دارا یوش داسے وائی چه اورمزو (اهورامزدا) ځکه زما مرسته اوکړه چه زهٔ نهٔ اریکے وم، نه دروه جن وم او نه څورکرونے وم ـ نهٔ زهٔ او نهٔ زما تومنه (اولاد) (او) زهٔ د صداقت او راستبازئ ملگرے یم ـ

په دے درے وارو مصرعو کښے چه کوم لفظونه (اریکے، دروه جن، څورکرونے) غیرهٔ راغلی دی هغه اوس هم په معمولی تغیر سره په پښتو ژبه کښے مروج او موجود دی. د دے نه دا صفا معلومیږی چه د دارا یوش په زمانه کښے چه پښتو ژبه څه رنگ وټیلے شوه هغه تر ډیره حده اوسنئ پښتو ژبے ته نزدو معلومیږی ـ او دا خبره موږ ته د وړاندے

نه معلومه شوی ده چه د دارایوش د سلطنت په دیارلسمه صوبه کښې د هیرودوټس مطابق د آرمینیانو سره پکتویس (پښتانهٔ) هم اوسیدل. نوموړی دا وئیلے شو چه د دارایوش په عهد کښې دایران په یو حصه کښې پښتو ژبه وئیلے شوه چه نمونه موږ ته په دے پورته ډبرلیک کښې اولیدله. دا هم تاریخي حقیقت دے چه د دارایوش د ډبرلیکنو ژبه زړه فارسی ده. او په دغه عهد کښې دایران ژبه زړه فارسی وه. چه وروستو ورنه پهلوی او بیا دا موجوده فارسی ژبه رااووتله. د موجوده فارسیٔ ژبے او اوسنیٔ پښتو ژبے ترمینځه مشابهت او یکسانیت واضح دے او په دے دلالت کوی چه دواړه ژبے د یو کورنیٔ سره تعلق لری.

په دے بنا دا خبره د فکر وړ ده چه هرکله پښتانهٔ په هغه زمانه کښې موجود وو. نو دوی به دغه خپله ژبه پښتو وئیله. په ن زمانه کښې چه په کومه خطه کښې استوګن دی او پښتو ژبه پکښې د مورنیٔ ژبے په ډول وئیلے شی. په قدیمه زمانه کښې به هم په دے خطه کښې پښتو ژبه وئیلے شوه. او چونکه دا د آریائی ژبو نه یو ژبه ده. نو لازماً د آریائی خلقو مورنیٔ ژبه وه. او آریائی خلقو به هرومرو وئیله. او دا د دے خبرے یو ټګرکند ثبوت کیدے شی چه آریائی خلق به په دے خطه کښې په ډیرشمیر کښې آباد وو. او که چرے داسے نهٔ وے یعنی د دے خطے آبادی په آریائی اکثریت مشتمله نه وے بلکه پښتو د آریائی اقلیت ژبه وے نو هغه کوم وجوهات کیدے شی چه غیر آریائی اکثریت دے د آریائی اقلیت د مورنیٔ ژبے په وئیلو مجبور کړو. دا خبره خو نهٔ د عقل نه مرسته موږی او نهٔ د نقل نه. د روزمره مشاهدے نه هم زما د دے قیاس مرسته کیږی. د تیر دویم لوئے جنګ په زمانه کښې د پښتنو په علاقه کښې روسی کازک مهاجرین استوګن شوی وو. د دوی مورنیٔ ژبه د پښتنو نه قطعی جدا وه. ولے د پښتنو په علاقه کښې د استوګنے په وجه په لږه موده کښې د دے خلقو وړوکو پښتو ژبه ډیر زر زده کړه. او داسے په صفائیٔ او روانیٔ به ئے وئیله چه د پښتنو او د دویٔ ترمینځه د ژبے په وینا کښې به څه فرق نه محسوس کیدلو. او که چرے د دوی او پښتنو ترمینځه د کړهٔ وړهٔ او خط و خال اختلاف نهٔ وے نو دا به هرګز نهٔ شوه معلومیدے چه ګوندے دا بچی پښتانهٔ بچی نهٔ دی. دغه شان نن ورځ هم چه د پښتنو په علاقه کښې کوم هندی مهاجرین په مستقل ډول استوګن شوی دی. هغوی د پښتنو سره د باهمی استوګنے او تعلق په وجه پښتو ژبه زده کړې ده. دا خلق که په دے علاقو کښې په مستقل ډول پاتے شول نو په دویم دریم نسل کښې به د دوی اود پښتنو ترمینځه بیلتون ګران شی. دغه حال د هغه پښتنو هم دے کوم

چه د ډیرې مودې نه په هند کښې استوګن شوی دی - او د هند د استوګنې په وجه ئې هندی تهذیب وتمدن خپل کړے دے - او نن ورځ اګرچه دوی خپل ځان ته نسلاً پښتانه وائی - لیکن د پښتو ژبې او پښتنو سره ددوی هیڅ څه تعلق نهٔ دے پاتې شوے. اودے باعث هم دغه دآبادئ کثرت او قلت دے.

زما ددے قیاس مرسته د یو بل مثال نه هم کیږی - په پښتنو قبائیلو کښې یوه لویه قبیله د اورمړ په نامه معروفه ده - دا قبیله نن ورځ په درے ځایه لهوګر (افغانستان)، د پیښور په ضلع او په وزیرستان (کانیګرم) کښې استوګنه ده - دا قبیله خپله یو مخصوصه ژبه لری - اګرچه ددے ژبې پوره پوره ماهیت لا معلوم شوے نهٔ دے - لیکن ددے ژبې او پښتو ترمینځه څه تعلق نشته او داظاهره ده چه دا ژبه (پښتو) او د پښتنو ژبه نهٔ ده - د خوش قسمتۍ نه دکانیګرم (وزیرستان) اورمړو داخپله ژبه تراوسه خوندی ساتلی ده او په خپل مینځ کښې پرے خبرے کوی لیکن د لهوګر او پیښور اورمړو دا ژبه هیره کړے ده - دا ظاهره ده چه ددے درے وارو علاقو اورمړ نسلاً یو خلق دی - لیکن دکانیګرم د اورمړو د مخصوصې ژبې په موجودګئ کښې عالمان دے عقیدے ته مائل دی چه اورمړ د پښتنو نه ځان له بیل خلق دی - په دے بنا دا یقینی ده چه د لهوګر او پیښور اورمړو به هم په ابتداء کښې دا خپله مخصوصه ژبه وئیله - ولے وروستو ئې د پښتنو په مینځ کښې د استوګنې په سبب داخپله مخصوصه ژبه هیره کړه او پښتو ژبه ئې مورنئ ژبه اوګرځیدله - او نن ورځ ددے خلقو (اورمړو) او نورو پښتنو ترمینځه څه فرق او امتیاز نشی کیدے -

(۲) د پښتنو د آرین نسل کیدلو یوه بله وجه دا ده چه ددے خلقو (پښتنو) غالبه او معلومه برخه په آریائی قبائیلو مشتمله ده - چه ذکر ئې په تفصیل سره په تیرو پاڼو کښې شوے دے - ددے نه علاوه د تاریخ په مختلفو دورونو کښې چه د پښتنو د کومونورو قامونو سره ژور تعلق پاتې شوے دے - په هغه قامونو کښې اکثر قامونه آرین النسل او یا مخلوط آرین النسل وو - او په دے وجه په دے خلقو (پښتنو) کښې د آریائی نسل غالبه برخه ده.

(۳) په دے لړ کښې د رِګ ویدا سرودونه هم زمونږ مرسته کوی - د وید پوهانو په خیال کښې په ویدونو کښې د ټولو نه زوړ رِګ وید ګڼلے شی - د محققینو په خیال کښې د رِګ ویدا زاړهٔ سرودونه د هندوکش په جنوبی لمنو کښې وئیلی شوی دی - او دباقی نورو ویدونو سرودونه د سپته (د اوو سیندونو خاوره) یعنی دَ مغربی پاکستان د علاقې سره تعلق لری - د محققینو خیال دے چه د رِګ ویدا دَ زړو سرودونو شاعرانو

په خپلو اشعارو کښې خپل ځواني شاعران او مشران ستائيلي دي. او د هغوی د عقل، زيرک توب او سپيڅلتيا ستائينه ئې کړيده. او د خپلو اسلافو د شاعرئ د لوړتيا اعتراف او ارمان ئې کړے دے. په دے سرودونو کښې د حب الوطنئ او د خپلو اسلافو سره د مينې او محبت تصور څرګند دے. او س که چرے موږ د پښتنو اولسي شفاهي شعري ادب ته پام او کړو نو دا خبره صفا معلوميږي چه پښتا نهٔ هم په خپل اولسي شفاهي شعري ادب کښې د خپلے خاورے غرونه او سيندونه ستائي. د دوئ په سندرو کښې د خپلو اسلافو سره د مينې او محبت جذبات څرګند دي. د خپل وطن سره مينه، د خپلو مشرانو عظمت او احترام او د خپلو روايااتو سره ټينګ تعلق ساتل د پښتون قام يو داسے خاصيت دے چه د هغې اعتراف هر څوک کوي. او د دغه خصوصيت هم د دے خبرے يو څرګند ثبوت دے. چه د دے خلقو غالبه برخه د قديم آريائي خلقو اخلاف دي.

او س چه موږ په دے ټولو خبرو غور او کړو نو دا وئيل به بے ځايه نهٔ وي چه پښتانهٔ آرين النسل دي. او د دے نه سيوا به په حقيقت حال يو الله تعالیٰ خبر وي ځکه چه رښتونے او حقيقي علم هم هغهٔ سره دے.

# تاریخي زمانه

## هخامنشي عهد حکومت: (۵۵۰ ق م نه تر ۳۳۱ ق م)

د کال سنه ۵۵۰ ق.م نه را په ایسته د پښتنو وطن د ایران د هخامنشي سلطنت په قبضه کښې راغلو او کندهارا په دے سلطنت کښې د مشرقي صوبو په لړ کښې آخري صوبه وه. چونکه د هخامنشي حکومت د آغاز سره د پښتنو د تاریخ آغاز هم کیږی. په دے بِنا داضروري ده چه د هخامنشي خاندان تاریخ لږ په لنډه دول هم بیان شي.

**هخامنشي قبیله:-** کوم باختري آرین چه په عمومي مهاجرت کښې د باختر نه د ایران په لور تلي وو. هغوی په عمومي ډول د "پارسوا" په نامه یادیدل. او دا هغه خلق وو. چه د رګ ویدا په شهادت په هندي آرین قبائیلو کښې د "یادو او توروا شا" سره زیات مربوط او متعلق پاتے شوے وو. د مهاجرت نه پس "پارسوا" قبائیل په دوؤ ځائګو کښې ویش شول. د دوی یو ځائګه چه د موجوده ایران په قطبي او قبلیځه علاقه کښې آباده شوی وه. د "ماد" په نامه یادیدله. او دا علاقه د دوی د استوګنې په وجه د "مادا" په نوم مشهوره وه. د دغه لفظ "مادا" د یوناني لیکوالو په لیکنو کښې "میډیا" ضبط شوے دے. د دے اولس بله ځائګه د "پارسوا" په خپل زوړ نوم د ایران په جنوبي حصو کښې آباده شوی وه. او د موجوده "پارس" نوم هم د دے ځائګې په نوم "پارس" مشهور شوے دے.

د دے قبائیلو په ګاونډ کښې سامي النسل آشوري او بابلي حکومتونه د عروج او ترقۍ انتها ته رسیدلي وو. نو قدرتًا دا قبائیل به د هغوی د دبکے د لاندے وو. او سیاسي عروج او وده به ئے نۀ شوه حاصلولے او د دے خلقو به د ملک په دوارو حصو کښې د خپلو خپلو قبائیلي سردارانو په ماتحتۍ کښې ژوند تیرولو.

په آشوري اطلاعاتو کښې د پارسوا قبائیلو ذکر په نهمه صدۍ (ق.م) کښې موجود دے. د آشوري کتبانو نه دا معلومیږی چه دا خلق په وړو وړو قبیلو کښې ویش وو. د

آشوری بادشاه سلمان ساریا شلم نصر (سـ۸۳۳ـق.م) په یو کتبه کښې د پارسوا په حقله داسې وئیلی شوی دی چه د پارسیانو د (۲۷) سردارانو نه ئې قلنګ واخستهٔ. په دویم وار د "تګلیت پلاسار" (۷۴۵-۷۲۷ ق.م) په کتباتو کښې هم د دوی ذکر شوې دې. دې بادشاه د مادیانو د ښارونو فتح کولو نه پس د پارسیانو ښارونه هم فتح کړی وو. د دې نه پس یو بل باچا اسارهادون (ESAR HADDUNE) څوځله په دوی باندې حملې کړې او دوی ئې لتاړ کړی وو. آشوری بادشاهانو به پارسوا قبائیلو ته د مادیانو په نسبت زیات اهمیت نهٔ ورکولو. ځکه چه د دې خلقو زمکې د مادیانو په نسبت شاړې او غیرآبادې وې. د سـ۶۱۲ـ ق.م په خوا وشا کښې چه د نینوا سلطنت تباه شو. او د آشوریانو سلطنت د مینځ نه اووتلو نو د میډیا قبائیل هم آزاد شول. او په دوی کښې د یو قامی حکومت نشوونما شروع شوه. په دې دول په "پارسوا" قبائیلو کښې هم یو حکمران ټبر پیدا شو. ولې دا دواړه حکومتونه په دغه زمانه کښې د خپل وخت نابوده او بې اثره حکومتونه وو. او د بابل د شهنشاهئ ویره چه د بخت نصر ظالمانه فتوحاتو په ټوله ایشیا کښې خوره کړې وه په دوی پرته وه.

"پارسوا" قبیلې چه پورته ئې ذکر او شو. د هیرو دوټس مطابق په شمیر کښې لس وې. چه شپږ پکښې مقیمې او څلور پوندا او کوچۍ وې. په دې قبیلو کښې مهمه قبیله د "پارساګاد" په نامه یادیدله. او هخامنشی قبیله د دې یوه څانګه وه. هخا منشی (ایکې منز) د دې خاندان د یو سردار نوم وو. او دا قبیله هم د دهٔ په نوم نوموړ شوه. او وروستو په دې قبیله کښې د فارس او د هغه وخت د معلومې دنیا لوئے لوئے بادشاهان پیدا شول. د هخامنشی خاندان د عظمت دا اقتدار دور د سائرس نه شوې دې.

**سائرس** :- دایران د شهنشاهئ اصلی عظمت او شان د سائرس نه شروع کیږی. چه د هخامنشی خاندان یو فرد او د کمبوجیه (کمبے سز) څوئے وو. د دهٔ اصلی نامه کورش ده. چه یونانیانو د "سائرس" په لفظ او یهودیانو د "خوروس" او عربو د "کیخسرو" په لفظ ضبط کړی ده. د دنیا د ټولو غیر معمولی شخصیتونو په شان د سائرس ابتدائی حالاتو هم د یو پراسرار افسانې شکل موندلے دے. او په اصلی رنګ کښې دا نهٔ شی معلومیدے چه سائرس څنګه اقتدار حاصل کړو. به هر حال دا تاریخی واقعه ده چه سائرس په ۵۵۰ ق.م کښې د "میډیا" په سلطنت قبضه

اوکړه ـ او د دے نه پس د هخامنشيانو د عظمت دور شروع شو ـ چه د "نابونيد" کتبه هم د هغې تائيد کوی ـ د دے کتبے نه دا معلوميږی چه د ۵۵۹ ق ـ م په خواوشا کښے "سائرس" د ملک يو معمولی بادشاه وو ـ او د ده[1] دا حيثيت د "اکبتانا" د فتح (۵۵۰ ق ـ م) پورے قائم وو ـ په ۵۴۶ ق ـ م کښے سائرس د شاه فارس په نامه ياد شوے دے ـ د "ميډيا" د فتح نه پس هغه د "ليډيا"[2] يونانی سلطنت هم فتحه کړو او په دے ډول د هغهٔ اقتدار په ټوله ايشيائے کوچک کښے د بحيره شام نه د بحيره اسو د پورے وسعت اوموندلو ـ

## د سائرس مشرقی مهمات :-

د سائرس په واقعاتو کښے څمونږ تعلق د هغهٔ د مشرقی مهماتو سره دے ـ هيرو ډوټس او ټی سيياز[3] دواړه يونانی مؤرخين د سائرس د مشرقی مهماتو باعث د ځنے صحرا نشينو او وحشی قبائيلو سرکښی ګڼی ـ دا قبائيل به غالبًا د باختر او جنوبی روشيا د علاقو خلق وو ـ دا خبره په يقين سره معلومه نهٔ ده چه د سائرس د دے مهماتو په دوران کښے د مشرقی ايران په دے خطو کښے د چا حکومت او د کوم قسم حکومت وو؟ يعنی دا خبره واضح نهٔ ده چه آيا د غه خلق د يو منظم حکومت په ماتحتی کښے د سائرس د فوځونو سره جنګيدلی وو او که نه دوی د سائرس د منظمو او مقتدرو فوځونو سره د قبائيلی لښکر په حيثيت کښے مقابلے کړی وے ـ البته د ومره خبره معلومه ده چه په کومه زمانه کښے سائرس د ايران د عظيم سلطنت لمنے ارتوٓلے، نو هم په دغه زمانه کښے په هند کښے بمبيسار (۵۹۱ ـ ۵۴۲ ق ـ م) نومے يو راجا د "جنوبی بهار" په علاقو حکمران وو ـ او د ګند هارا او وادی کابل په علاقه "پکوساتی" نومے يو راجا حکومت کولو ـ او د ګند هارا د دے رياست صدر مقام "کاپيسی" ښار وو ـ دا ښار د رود پنج شير او رود غوربند د اتصال په مقام د کابل نه قطب شمال طرف ته آباد وو ـ

---

[1] "اکبتانا" يا "هګبتانا" د "ميډيا" د سلطنت صدر مقام وو ـ د دے ښار تعين او شناخت د اوسنی "همدان" سره شوے دے ـ د سائرس په عهد کښے هم دا ښار د ايرانی سلطنت صدر مقام وو ـ

[2] "ليډيا" د ايشيائے کوچک شمال مغربی علاقه وه ـ او د يونانی تهذيب او تمدن مرکز وو ـ سارډيس د دے حکومت صدر مقام وو ـ دا ښار د موجوده "سمرنا" سره نزدو آباد وو ـ

[3] ټی سی ياز يو يونانی حکيم وو ـ او د ۴۱۶ ق ـ م نه تر ۳۹۸ ق ـ م پورے د ايرانی دربار شاهی معالج وو ـ د دے نه پس دهٔ خپل تاريخ ليکلے دے ـ (اصحابِ کهف ص ۶۳)

داسې معلومېږي چه د سائرس د حملې خطره دے راجا ځرګنده ليدله. نوځکه ئې هم په دغه ورځو کښې خپل يو استازے ديو خط سره د مګدهٔ راجا بمبسار ته ليږلے وو. د دے سفارت مقصد او دخط مضمون معلوم نهٔ دے. ولے هم په دغه ورځو کښې (۵۰۷-۵۲۵ ق-م) کښې هخامنشي بادشاه سائرس د هند و پاکستان په دروازه (ګندهارا) حمله آورليدلے شي. نو د دے نه دا قياس کيدے شي چه دګندهارا راجا "پکوساتي" به دمګدهٔ دراجا بمبسار نه د سائرس دحملې برخلاف امداد غوښتے وي. د هند نه دا فوځي امداد ګندهارا ته رارسيدلے دے او که نه. داخبره په يقيني ډول معلومه نهٔ ده البته قرائن په دے دلالت کوي چه دګندهارا خپلو خلقو د سائرس شديده مقابله کړې ده. او دکاپيسي" په حفاظت کښې د سائرس د فوځونو سره په ډير شجاعت جنګيدلي وو. دغه وجه وه چه د فتح نه پس د هغه کراؤ او تکليف په بدل کښې کوم چه سائرس ته دګندهاريانو لخوا ورپيښ شوے وو. دکاپيسي ښارئې بيخي برباد کړو.

د دے جنګ په نتيجه کښې په اول وار د اباسيند نه په قبله ټوله علاقه د ايراني سلطنت مقبوضه شوه. او دګندهارا په نوم په اول وار په ايراني کتابو کښې اوليکلے شوه. سائرس په دے مشرقي مهماتو کښې پنځه شپږ کاله په جنګونو کښې اخته وو. او دے خلقو دخپل وطن د حفاظت په لړکښې دهغهٔ سره خونړي جنګونه کړي وو. ولے د سائرس د منظمو فوځونو په مقابله کښې د دوئ يو مدافعت هم کامياب نهٔ شو. او "باختر" د راغيانا "، "ستاګيديا"، "ساکستانا"، "جدروشيا" او "ګندهارا" ټولے صوبے د ايران په سلطنت کښې شاملے شوے. او د دے مشرقي صوبو وائسرائے "برديه" مقرر شو چه د سائرس کشرځوئے وو. د دے نه پس سائرس بابل هم فتح کړو.

د پښتنو په تاريخ کښې د سائرس د ټولو فتوحاتو ذکر څه موزونيت نهٔ لري. ولے د بابل د فتح ذکرکول په دے وجه ضروري دي چه د رواياتو په بنا د پښتنو د نسل د مسئلے سره د بابل د فتح يو ژورتعلق بيانولے شي. يعنې دا وئيلے شي چه د پښتون قام اسلاف يا خو په يروشلم باندے د بخت نصر د حملے په نتيجه کښې او يا د بابل د اسارت نه پس د دوئ د آزادۍ په موقع دغور په غرونو کښې ميشته شوي وو. اګرڅه هم دپښتون غوندے قام په حقله چه په بے شميره قبيلو کښې تقسيم* دے. او د هرے قبيلے وګړي د يلے نه په شکل شباهت، خط وخال، لباس، لهجے او دودونو دستورونو کښې څه نه څه فرق لري. دامفروضه چه دا قام به متحد الاجزاء او خالص سامي النسل وي خپل ترديد په

.ځپله کوی - ولې بیا به هم د بابل دفتحې د ذکرسره دا خبره نوره هم رڼه شي -

د بابل د فتحې اراده سائرس د بابل د خلقو په خواهش کړې وه - په دغه زمانه کښې د بابل حکمران بیل شازار نومیده ۰ - د نینوا د تباهئ نه پس په بابل کښې د یو نوی بادشاهئ بنیادونه مضبوط شوی وو - او د سائرس نه پنځوس کاله اول د بنوکد نمر (بخت نصر) د جابرانه فتوحاتو په نتیجه کښې ټوله مغربي ایشیا د بابل د سلطنت مقبوضه وه - چه بیت المقدس باندې د بخت نصر درې ځله حملې د تاریخ انقلاب انګیزه واقع دی - په دې حملو کښې یواځې دا نه چه د دنیا یو ډیره زرخیزه خطه تباه وبرباد کړه ، بلکه د فلسطین ټوله قابل ذکر آبادی ئې ځه اووژله - او څه ئې په داسې بې دردئ بابل ته قیدی راوستله - چه یو بې رحم قصاب به له ګډو بزو سره د داسې بې رحمئ سلوک جائز او نۀ ګڼي -

د بخت نصر نه پس د ده په خاندان کښې څوک داسې جابر شخصیت پیدا نۀ شو چه د ددې جنګ پسند بنیادم اصلی جانشین ګرزیدلې وې - به هرحال د سائرس په وخت کښې د بابل حکمران بیل شازار وو - چه د ظلم او عیاشئ یوه مجسمه وه - او دا هغه سړې وو - چه د هیکل مقدس په پاکو لوښو کښې ئې شراب ځښلی وو - او ددې کبر په نتیجه کښې د بابل په تباهئ مهر اولګیده ۰ - د مؤرخینو په دې خبره اتفاق دې چه په دغه زمانه کښې د بابل ښار ناقابل تسخیر ګڼلې شو، ددې باوجود سائرس د خلقو په فریاد او خواست دې ګران کار ته ملا او تړله - او د سیندونو ترمینځه علاقه (دوآبه) ئې فتحه کړه او ښار ته مخامخ شو - د بابل خلق د بیل شازار د ظلمونو نه تر پوزې راغلی وو - نو هغوی د حمله آور فوځ ښۀ امداد اوکړو - د بابل دا ولس رهنما د بابل یو ځوانې ګورنر وو - چه ګوب ریاس (Gob - RyAS) نومیده ۰ - د هیرو ډوټس د وینا مطابق دې ګورنر د سیند نه نهرو نه اوښکل - او د سیند مخه ئې واړوله - او په دغه لارې ئې ښار ته فوځونه وردننه کړل - او د سائرس د راتلو نه اګاهو بیا ښار فتح شوې وو -

دا خبره د فکرور ده چه د پښتنو د نسل په باب کښې د اسرائیلی نظرئې یو مغربي مرستیال ښاغلې راورټي داسې وائي چه « د کورش (سائرس) دا عادت وو چه ده به اکثر وغړ وغړ قبیلې او کله کله به ئې امانی قام د یوې علاقې نه پورته کړو او په یو بلې علاقې کښې به ئې میشته کړو نوکیدې شي چه ځنې یهودی قبائیل ئې هم د ایران په ځنې صوبو کښې آباد کړی وی - په دې غرض چه د ورانئ او شرارت نه پاتې وی - او د دې ظلم نه چه کوم یهودیان پېښیدلې شول او ځانونه ئې د دې پابندئ نه ژغورلې شول - نو هغوی به د غور په غرونو

کښې پناه اخستې وې - او دکورش او د هغه د جانشینو د ظلم نه به ځانونه بچ کړي وي؛

دا یو داسې خبره ده چه د نورو ماخذونو نه علاوه د یهودیانو خپل اطلاعات ئې هم تردید کوي - ځکه چه د یهودیانو په خیال کښې «کورش» د خدائ ممسوح او د هغهٔ شیون وو - او په دې غرض رالیږلے شوے وو - چه یهودیان د بخت نصر د ظلم نه خلاص کړي - د دې خبرې تصدیق یسعیا نبي د برمیاني او د دانیال نبي د صحائفونه څرګند دے - د دے نه علاوه یهودیان په خپل نسل یو داسې غاوره قام دے چه دوی په وس سره د غیر اسرائیلي خلقو د عظمت اعتراف نهٔ کوي - ولے دکورش په باب کښې ټول یهودیان د هغهٔ د انصاف او رحمدلۍ ستائینه کوي - او دا د دې خبرې څرګند ثبوت دے چه یهودیان د دے باچا ډیر احسان مندوو - د یهودیانو نه علاوه یوناني مؤرخین لکه زینوفن او هیرو ډوټس هم دکورش دانصاف او بلند لخلاقۍ ستائینه کوي - یونانیان په قامي لحاظ سره دکورش سخت مخالف وو - ځکه چه دا وړومبې باچا وو چه د یونانیانو قامي ریاست لیډیا ئې فتح کړے او یونانیانو دا ایشیائي مرکزئې په خپل سلطنت کښې شامل کړے وو - او بیا د ده د جانشینو په زمانه کښې یونانیان د دوی د لاسه ډیر تزنیدلی وو - لیکن د قامي مخالفت باوجود یوناني مورخینو له خواد کورش ستائینه د دے خبرے واضح ثبوت دے چه هغه واقعي یو انصاف پسند، بلند اخلاق او رحمدل بادشاه وو - نو د دے تاریخي شهادتونو په رڼا کښې د ښاغلي راورټي پورته بیان شوے قیاس هیڅ وزن نهٔ لري - او په دغه ډول چه ښاغلي الله بخش یوسفي په خپل کتاب «یوسفزی افغان» کښې هم دغه خبرې په مختلفو الفاظو بیان کړي دي - هغه هم بے بنیاده دي -

سربېره د دے تاریخي شهادتونو د یهودیانو پراګنده کیدل او د دوی د ځینې قبیلو د غور په غرونو کښې د پټیدلو واقعه د اسرائیلي نظریئ مطابق د بخت نصر د حملو په نتیجه کښې شوی ده - نه چه دکورش اعظم د لاسه - او هرکله چه مونږ د تورات د شهادت په رڼا کښې په یروشلم باندے د بخت نصر د حملو شدت او حدت او د محاصرو سخت والی ته پام اوکړو نو د دے خبرے هډو تصور نهٔ شي کیدے چه ګوندے یهودیانو د ومره ډیر خلق به د بخت نصر د محاصرے نه وتلی وي - او هغوی ته به دا موقع حاصله شوی وي، چه د غور په غرونو کښې پناه واخلي -

د طوراتِ مطابق د سائرس ظهور او د بابل فتح د یهودیانو د پاره د یو نوي ژوند پیغام او د خوشحالۍ زیرے وو - او دا واقعات هم هغه شان اوشول څه رنګ چه د بابل د فتحې د واقع د ظهور نه اتهٔ سله کاله وړاندے یسعیا نبي او شپیتهٔ کاله وړاندے

یرمیا نبي ددے په حقله پیشن گویانے کړی وے - د بابل د فتح په وخت کښې دانیال نبي هم په بابل کښې موجود وو - او سائرس د هغهٔ ډیر احترام او قدر کړے وو - او هم ددے دانیال نبي په وینا سائرس یهودیانو ته آزادی ورکړی وه - او دا اعلان ئے کړے وو چه خدائے پاک ماته داحکم کړے دے چه زهٔ د هغهٔ د پاره په یروشلم کښې یو هیکل جوړ کړم - (یعنی هغه د حضرت سلیمانؑ هغه پخوانے هیکل بیا سر دوباره آباد کړم ) - پس د ملک ټولو خلقو ته بکار دی چه ددے کار د پاره دِ هرقسم سازوسامان تیار کړی - هم دغه سائرس ووچه د هیکل مقدس هغه ټول زرین لوښی چه بنوکد نصر د هیکل مقدس نه راوړی وو - د بابل د خزانے نه راوویستل - او یهودیانو ته ئے حواله کړل او یهودیانو ته ئے آزادی ورکړه - دا ټول یهودیان د خپل یومشر « زربابل » په مشرتابه کښې فلسطین ته لاړل - غرض د پورته شهادتونو په رڼا کښې سائرس د بابل د یهودیانو یو لوئے محسن وو - او ددے خبرے هم و سوال نهٔ پیدا کیږی چه په دغه وخت کښې یهودیان پټ شوی وی - او د عور په غرونو کښې استوګن شوی وی -

د بابل فتح د سائرس شخصیت په ټوله دنیا کښې څرګند کړو - او د ۵۳۹ ق م په خواوشا کښې هغه د یو عظیم الشان سلطنت خاوند وو - دا عظیم شهنشاه په ۵۲۹ ق. م کښې وفات شو -

## کمبوجیه (کمبے سز - کے قباد ) :- (۵۲۹ - ۵۲۲ ق - م)

د سائرس د وفات نه پس د هغه مشرځوی کمبوجیه د هغهٔ جانشین شو - دا سړے د پلار په ژوند کښې هم د سلطنت په کاروبار کښې د پلار سره شریک وو - د سائرس کشر ځوی بروبه (سمردیس ) څه رنګ چه د پلار په وخت کښې د مشرق صوبو واشراځے وو - دغه شان د کمبوجیه په وخت کښې هم وو - لیکن لږے ورځ پس کمبوجیه په خپل ورور بدګمانه شو - او چه کوم وخت هغه د مصر د فتحه کولو تکل کولو (۵۲۵ ق - م ) نو په ډیره پراسراره طریقه ئے بروبه قتل کړو - او بیا مصر ته لاړو او مصر ئے فتح کړو او هغه لا په مصر کښې ووچه په ایران کښې بغاوت اوشو - دا بغاوت «گوماتا» نومے یو مجوسی کړے وو - چه په شکل وشباهت کښې د برویه سره ډیر مشابه وو - دے سړی د برویه د پراسرار قتل نه فائده واخسته - او د برویه په نوم ئے بغاوت پورته کړو - کمبوجیه چه په مصر کښې ددے واقعاتو نه خبر شونو په ډیرے تادئ د ایران په لور رروان شو او چه شام ته راورسید نو یو ورځ په اس باندے سوریدو چه د اس نه راپریوتو او په

خپل خنجر باندے ژوبل شو۔ او ددے زخم نه شل ورځ پس مړ شو۔ (سـ۵۲۲ـنه ق۔م)۔

کمبوجیه د خپل حکومت په وخت کښے زیات وخت د مصر په فتح کولو کښے تیر کړے وو۔ او بیا ئے د ایتهوپیا (حبشه) په فتح کولو کښے خپل طاقت خرڅ کړو۔ د خپل سلطنت د مشرقي صوبو سره د هغهٔ تعلق ډیر کم وو۔ او دا په یقین سره نشي ویلے کیدے۔ چه د کمبوجیه د حکومت په وخت کښے به ګندهارا او افغانستان علاقے په زور د دستور په ایرانی سلطنت کښے شاملے وے۔ او که دوی به بغاوت کړے وی۔ او دارایوش اول به دا صوبے بیا دوباره فتح کړی وی۔

**دارایوش اعظم** (۵۲۲-۴۸۶ ق-م)۔ د کمبوجیه نه پس د ایران تخت دارایوش ته اورسید۔ نوموړے د سائرس د ورور ګستاسپ ځوی او د سائرس وراره وو۔ د تخت نشینئ سره سمدستی ئے د «ګوماتا» بغاوت رفع کړو او په ملک کښے امن امان قائم کړو۔ او خپل سلطنت ئے په مختلفو صوبو یا ریاستونو کښے اوویشلو۔ ددهٔ د سلطنت صوبے اتهٔ ویشت دی چه نومونه ئے په کتباتو کښے لیک دی۔ او دا د دنیا خوش قسمتی ګنڼل پکار دی۔ چه دارایوش ځنے خپل کتبات په داسے ډبرینو تختو نقش کړی دی۔ چه هغه د سکندر خونړئ حملے هم برباد نهٔ کړے شوے۔ د دارایوش دا کتبات څه رنګ چه د قدیم ایرانی سلطنت د نورو حصو د پاره اهمیت لری۔ د غه شان د پښتنو د قدیم تاریخ د پاره هم ډیرے اهمے دی۔ هم دغه کتبات دی چه چه په هغے کښے د پښتنو د وطن د مختلفو علاقو پخوانی نومونه لیکلے شوی دی۔ او ددے علاقو د پخوانی نومونو شناخت او تعین تقریبًا تقریبًا شوے دے۔

لکه چه وړاندے ویلے شوی دی «ګندهارا» د سائرس په وخت کښے فتح شوی ده۔ او که بالفرض د سائرس د وفات نه پس دے علاقے بیا خود مختاری حاصله کړی هم وی۔ لیکن دا واقعه ده چه ګندهارا د دارایوش د سلطنت په ابتدا کښے د ایرانی سلطنت یو مقبوضه وه۔ او دا به سمدستی بیا فتحه شوی وی۔ د ګندهارا نوم د دارایوش په ټولو کتباتو کښے موجود دے۔ دا هم یو تاریخي واقعه ده چه د دارایوش د هغه شاندار محل په تعمیر کښے کوم چه په شهر «سوسا» کښے آباد شوے وو۔ د ګندهارا د غرئینے علاقے قیمتی عمارتی لرګی استعمال شوی وو۔ دا صوبه د هند د فتوحاتو د پاره هم د ایرانی سلطنت اوله مورچه وه او دارایوش خپل بحری مهم (په سـ۵۱۶ـنه ق-م کښے) هم ددے علاقے نه د اباسیند او بحیرهٔ عرب د حالاتو معلومولو په غرض لیږلے وو۔ او ددے بحری مهم د رپورټ نه پس د هند صوبه فتحه شوی ده۔ په کتباتو کښے دا هندی صوبه د هندش په نامه ضبط ده۔ او دغه لفظ

هندش وروستو دیونانی لیکوالو په لیکنو کښې د "انډیا" په لفظ ضبط شوے دے۔ ددے هندی صوبے جغرافیائی حدود په یقینی ډول نهٔ دی متعین شوی۔ د ځنے مورخینو په خیال کښې دا صوبه د اباسیند او جهلم په مینځ کښې ده۔ ځنے ددے حدود دبیاس سیند تر غاړے رسوی۔ او ځنے داسے هم دی چه دا هندی صوبه په ټوله وادئ سندھ بلکه آن د راجپوتانے پورے علاقه باندے مشتمله کنړی[۱]۔ او دا قیاس درست معلومیږی۔ ځکه چه دا صوبه د ایرانی سلطنت په ټولو صوبو کښې زیاته آباده، زرخیزه او خلق ئے په اقتصادی لحاظ سره مارهٔ پټ وو۔ دا د دارایوش د سلطنت شلمه صوبه وه۔ او د سلطنت په ټولو صوبو کښې ددے خراج زیات یعنی اندازاً یو ملین پونډه وو۔ دغه وجه ده چه دارا یوش په خپل سلطنت کښې ددے صوبے په شمولیت ډیر خوشحال وو او په خپله یو کتبه کښې افتخاراً داسے وائی چه د نورو ملکونو نه علاوه زهٔ د گندهارا او هندش هم حکمران یم۔

داخبره هم د فکر وړ ده چه د ایرانیانو او بیا په دوی پسے وروستو د یونانیانو په خیال کښې چه د کومے علاقے نه هند مراد وو هغه علاقه هم هغه وه چه د دارا یوش د سلطنت شلمه صوبه وه۔ او په دے صوبه کښې تقریباً هغه ټوله علاقه شامله وه چه اوس په مغربی پاکستان کښې شامله ده۔ د موهنجو دارو او هړپے یعنی د وادئ سندھ د قبل التاریخی زمانے د اکتشافاتو نه پس په تاریخی زمانه کښې هم دا علاقه د یوشاندار تهذیب و تمدن زانگو وه۔ او د هغه وخت کوم متمدن او مهذب قامونه چه په اول وار په دے ملک کښې د کومو خلقو او کومو علاقو سره متعارف شوی وو۔ هغه خلق او هغه علاقے هم هغه وے چه نن زمانه کښې ورله مغربی پاکستان وئیلے شی۔ په دے بنا په تاریخ قدیم کښې د اصلی هندی علاقو په نسبت د تهذیب و تمدن په لړ کښې پاکستان د اولیت فخر په ځائے کوُلے شی۔

په هخامنشی خاندان کښې د دارایوش عهد حکومت د پښتنو د تاریخ د پاره ډیر اهمیت لری۔ په دے دور کښې نه صرف دا چه د پښتون قام د موجودگئ په حقله موبز ته د هیرو دوټس په لیکنو کښې یقینی معلومات په لاس رائی بلکه ددے باچا په یو ډبرلیک (ربیستون) کښې د پښتو ژبے سراغ هم موندلے شی۔ چه ذکر ئے وړاندے شوے دے۔ او موبز دا په یقینی ډول وئیلے شو چه د (۵۰۰ ق۔م) په خوا وشا کښې پښتون قام هم په دے خپله علاقه

---

۱ د پروفیسر مرجم دار تاریخ "پخوانے هند"۔

کښې موجود وو۔ او ژبه ئې هم دغه پښتو وه۔

دارایوش د هخامنشي خاندان یو مقتدر حکمران وو۔ او د ایشیا یورپ او افریقې په اتۀ ویشت ملکونو تنها حکمران وو۔ د (۳۵) کاله حکومت نه پس په ۴۸۶ق۔م کښې وفات شو۔

**زرکیسز:۔ (۴۸۶-۴۶۵ق۔م)** د دارائې اعظم نه پس د هغۀ ځوئ خشایارشاه چه یونانیان ورله زرکیسز او یهودیانو د اخسویرس په نامه یادکړے دے تخت نشین شو۔
د دے بادشاه په وخت کښې د ایران او یونان تعلقات ډیر خراب شول۔ خشایار شاه دیونان د فتح کولو په غرض یو لوئې فوځ مرتب کړو۔ په یونان ئې حمله اوکړه۔ او د یونانیانو یو ښارے ئې اوسوزولو۔ وروستو د غه بدل یونانیانو د سکندراعظم په سرکردګۍ کښې د دارایوش سوم په عهد کښې داسے واخست چه په ‹‹ پرسی پولس›› کښې د ‹‹ خشایارشاه ›› تاریخي محل ئې اوسوزولو۔ د ایران او یونان هم دغه جنګ وو۔ چه په هغې کښې د پښتنو فوځې دستے هم شاملے شوے وے۔ او د هیرودوټس د شهادتونو په لړ کښې ئې وړاندے ذکر شوے دے۔ امکان لري چه د ایران او پښتنو ترمینځه به دا فوځي روابط د دارایوش اول د زمانې نه قائم وو۔ د ځینې عالمانو داخیال هم دے چه د سکندر د حملے نه اول د ګندهارا په علاقه کښې د یوناني رسم الخط د رواج موندلو یو سبب دا فوځي روابط هم کیدے شي۔

د زرکیسز د عهد حکومت بله خبره چه د پښتنو په تاریخ کښې اهمیت لري۔ هغه د تورات (آستر) هغه شهادت دے چه ذکر ئې وړاندے شوے دے۔ د دے شهادت له مخه په ګندهارا کښې د یهودیانو د موجودګۍ قیاس هم مرسته موي۔ د زرکیسز په وخت کښې مرکزي حکومت لا ښۀ طاقتور وو۔ او په مشرقي صوبو باندے د مرکزي حکومت ګرفت مضبوط وو۔ اګرچه د دے خبرے امکان معلومیږي چه د زرکیسز په وخت کښې به د هغۀ د سلطنت هندي صوبے بغاوت کړے وي۔ د دے قیاس مرسته د زرکیسز د زمانې د یو د برلیک نه کیږي په دے کتبه کښې زرکیسز داسے وائي چه هغه زمکه چه هورے به خلقو د ‹‹ دیوا ›› عبادت کولو۔ ‹‹ ما (زرکیسز) د هغه خلقو عبادت خانې ورانې کړے ››
ممکنه ده چه د دے مزکے نه مراد د هندي صوبے علاقه وي۔ او د زرکیسز په وخت

---

له د ‹‹ دیوا ›› نه مراد آسمان دے۔ ممکنه ده چه د دے نه مراد د نمر عبادت کوونکي وي۔

کښې دلته بغاوتونه شوی وی ـ او بیا دا خلق مغلوب شوی وی ـ

دځپل پلار په شان زرکیسز هم د یونانیانو د پاره ناقابل تسخیر وو ـ لیکن د زر کیسز نه پس په حالاتو کښې په ډیرے تندئ او تیزئ تبدیلی راغله ـ په هخامنشی سلطنت کښې دضعف و زوال علامے ښرګندے شوے ـ او دڅلورے صدئ ق ـ م په مینځ مینځ کښې د هند و پاکستان شمال مغربی علاقے په وړو وړو ریاستونو کښې تقسیم شوے وے ـ او عام‌ډ په دے ریاستونو د مرکزی حکومت ګرفت کمزورے وو ـ د هخامنشیانو سلطنت د سکندر اعظم د لاسه تباه شو ـ دغه وخت کښې د ایران بادشاه دارایوش سوم وو ـ نوموړے په سنه ۳۳۶ ق ـ م کښې حکمران شوے وو ـ او په سنه ۳۳۱ ق ـ م کښې د سکندر د حملے په نتیجه کښې اوو‌ړلے شو ـ

# هخامنشی دوره او پښتانه

د ایران د هخامنشی خاندان عظیم سلطنت څه د پاسه دوه سوه کاله د دنیا په اتۀ ویشت ملکونو قائم وو ـ او د پښتنو وطن هم د دے سلطنت یو برخه ده ـ

لکه چه وړاندے په تفصیل سره اوو‌یلے شول ـ د پښتنو په حقله یقینی معلومات هم په دے زمانه کښې مونږ ته په لاس راغلی دی ـ په پنځمه صدئ ق ـ م کښې مونږ د هیرو دوټس دځلے نه د دے خلقو (پښتنو) نوم او د دوی د وطن نامه هم اوریدلی ده ـ او د پښتون قام ځنے قبیلے موهم په ځپلو نومونو سره په دغه زمانه کښې پیژندلی دی ـ دا قبائیل چه څه رنګ په هغه قدیمه زمانه کښې په کومو کومو علاقو کښې آباد وو ـ دغه شان نن ورځ هم په هغه علاقو کښې آباد دی ـ د دے خلقو دلباس عادات وخصائل او د وسلو په حقله دلته هم څه معلومات حاصل شوی دی ـ دا معلومات اګر که ډیر مختصر دی ولے بنیادی حیثیت لری ـ په دغه زمانه کښې مونږ د پښتنو او حکومت ایران د فوځی تعلق نه هم خبر شوی یو ـ او په اکثرو احتمالاتو دا معلومه شوی ده ـ چه په دے علاقو کښې ځنے سامی قبائیل هم موجود وو ـ

دا قیاس به هم بے ځایه نۀ وی چه هرکله د پښتنو او حکومت ایران ترمینځه د فوځی ملازمت تعلقات قائم وو ـ او د دوئ دا علاقه د دوؤ سوو کلونو نه زیاته عرصه پورے دایران په سلطنت کښې شامله وه ـ نو دا لازمی خبره ده چه د دے خلقو (پښتنو) تهذیب او تمدن ثقافت او مذهبی عقائد به هم د ایرانیانو نه متاثر وو ـ د دے قیاس مرسته

دهیرو دوئیس دشهادتونو نه هم کیږی. اګرچه دا هم ظاهره ده چه دهندیانو سره دګوانډ او قربت په وجه به دهندی ماحول اثرات هم په دے خلقو کښے ښکاره وو. لیکن دهخامنشی دورے اثرات ډیر زوروو - او ځنیله دهندی خلقو تهذیب وتمدن هم ددے نه متاثروو. تر دے چه دموریا خاندان د پاټلی پترا (پټنه) دشاهی محلاتو په تعمیر کښے د «سوسا» دشاهی محلاتو تقلید شوے وو. نو دا ظاهره ده چه په ګندهارا او دپښتنو په نورو نورو علاقو کښے به هم په طرز تعمیر کښے ایرانی تقلید مروج وو.

دا ایرانی طرزمعاشرت نخښے نښانے د ټیکسلا په کنډ والو کښے څرګندے دی. ټیکسلا دایران د هندی صوبے صدرمقام وو. په دے کنډ والو کښے د یوآتش کدے نخښے نښانے تراوسه موجودے دی. او په دے قیاس دلالت کوی چه په دغه زمانه کښے د دے علاقو خلقو هم د ایرانیانو په شان داور پرستش کولو.

د دے خبرے تصدیق دسکندر دواقعاتو نه هم کیږی. سکندر چه کوم وخت ټیکسلا ته راغ نو هغهٔ په دے ښار کښے ځائے په ځائے آتشکدے اولیدلے. سکندر په خپلو واقعاتو کښے دا هم لیکلی دی چه ددے ځائے (ټیکسلا) خلق خپل مړی د ښخولو په ځائے د آتش پرستانو په شان د مرغانو وړاندے کیږدی.

دا ظاهره ده چه هرکله په دے هندی صوبه کښے خلق د ایرانی معاشرت او مذهب نه متاثره وو. نو دغه حال به دګندهارا او د پښتنو د نورو علاقو هم وو. او دابالکل ممکنه ده چه د ټیکسلا په شان به په «کاسپتروس» (پیښور) کښے هم آتشکدے موجود وے. او د دے علاقو خلقو به د اور عبادت کولو. ځکه چه په دغه زمانه کښے لا بده مذهب د پښتنو تر علاقو نهٔ وو رارسیدلے - ولے د بده مرغه نه خو د آثار قدیمه په شهادت او نهٔ د سکندر د یونانی مؤرخینو په لیکنو کښے موږ دګندهارا دخلقو د قدیم تهذیب وتمدن په باب کښے څه سراغ موندلے شو. امکان کیدے شی چه د پیښور او په دے علاقه کښے د دے پخوانی تهذیب او مذهبی آثارو نخښے نښانے د وروستینو حمله آورو قامونو د حملو په نتیجه کښے خرابے شوی وی. پیښور اګرچه د ډیرے قدیمے زمانے نه د تاریخ په مختلفو دورونو کښے خپل نوم او مقام محفوظ ساتلے دے. ولے د خپل جغرافیائی محل وقوع په وجه په مختلفو ادوارو کښے د هرحمله آور قام په زد کښے هم راغلے دے. دغه وجه ده چه په دے تاریخی ښار کښے د قدیم تهذیب نخښے نښانے ډیرے کمے پاتے شوی دی.

دا هم امکان لری چه د هخامنشی حکومت په آخری دوره کښے په څه وجوهاتو دکاس

پټروس (پېښور) اهمیت کم شوے وی - او دګندهارا دصدرمقام حیثیت پشکلاوتی (چارسده) موندلے وی ـ لکه چه دسکندر دحملے په زمانه کښې دګندهارا صدرمقام هم دغه ښار وو۔ دګندهارا په قدیم تاریخ کښې د پېښور په شان پشکلاوتی (چارسده) هم ډیر اهمیت لری. ولے دبده مرغه ددے مقام په حقله هم دآثار قدیمه ماهرانو په یو وخت کښې هم څهٔ خاص توجو نهٔ ده کړے۔ که چرے ددے مقام دګندهٔ والواو درااېستلوکار دآثارقدیمه د ماهرینو په نګرانئ کښې په باقاعده او منظمه طریقه اوشی نو توقع کیدے شی چه ددے مقام نه به دقدیم تاریخ په حقله ډیرے خبرے معلوے شی۔

دا خبره چه دهخامنشی حکومت سرکاری مذهب زردشتی مذهب وو۔ د دارا یوش اعظم دکتبے نه معلومیږی - په دے کتبه کښې دارا داسے وائی ا۔

"لوئ او پاک اهورا مزدا دے ـ هغهٔ زمکه او اسمانونه پیدا کړل۔ هغهٔ د انسان نیک بختی پیدا کړه۔ او هم هغه یواځ دارا یوش د ډیرو ملکونوحکمران او د ډیرو قامونوآئین ساز مقرر کړو۔"

"اهورا مزدا ما ته په خپل فضل حکومت راکړو۔ او د هغهٔ په مهربانئ ما په مزکه کښې امن قائم کړو - زهٔ د آهورا مزدا نه خواست کووم چه هغه ما، زما خاندان او دا ملکونه په امن او حفاظت کښې اوساتی۔"

"اے انسانه! ستا د پاره دآهورا مزدا دا حکم دے چه د بدئ خیال مهٔ ساته - نیغه لاره مهٔ پرېږده او دګناهونو نه ځان زغوره -"

د پورته کتبے نه د دارا یوش او د هغه زمانے د ایران مذهبي عقائد معلومیږی - دا ظاهره ده چه آهورا مزدا د زردشتی مذهب رب اعلیٰ دے - او دا ډیره ممکنه ده چه په دغه زمانه کښې به د ټول ایرانی سلطنت سرکاری مذهب هم زردشتی مذهب وو۔ اوڅه رنګ چه مونږ په تیرو پاڼو کښې د ټیکسلا په باب کښې د سکندر په واقعاتو کښې د زردشتی مذهب شهادت لیدلے دے ـ نو دا قیاس یقین ته نزدومعلومیږی چه د ګندهارا خلق به هم د آهورا مزدا پیروکار وو - او په کاسپتروس او پشکلاوتی (پېښور او چارسده) او دغه شان نورو ځایونو کښې به آتش کدے جوړے وے - او خلقو به د اور عبادت کولو - په هخامنشی دوره کښې مونږ د پښتنو او ایرانیانو د فوځی روابطونه خبرشوی یو۔ د فوځ او فوځی معاملاتو سره مینه او تعلق د پښتون قام یو داسے خاصیت دے چه نن هم په دے خلقو کښې په واضح ډول ځرګند دے۔ دغه شان ددے خلقو

(پښتنو) یو بل خصوصیت دخپل مذهب سره مینه او عقیدت هم دے۔ او هرکله چه موږ په نن زمانه کښې دخپل مذهب سره د پښتنو تعلق او محبت ته گورو نو موږ دا وئیلے شو چه په هخامنشي دوره کښې به هم د دے خلقو مذهبي شغف هم دغه شان بلکه دد ے نه به هم زیات وو۔ او ډکندهارا په هرگُټ کښې به د اهورا مزدا ستائینه کیدله۔ داخبره په دے علاقه کښې د بده مذهب د عروج نه هم مرسته موږ۔ په دے بِنا داخبره ناقابل یقین نهٔ ده چه زردشتي مذهب به هم په دے خطهٔ کښې دخپل عروج ورځے شپے تیرے کړی وی۔

لیکن داخبره هم یاده ساتل پکار دی چه څه رنګ دڅلورم صدئ ق۔م په میځ میځ کښې په هخامنشي سلطنت کښې د ضعف او زوال ځینې نښانے څرګندے شوے وے۔ دغه رنګ په دے زمانه کښې زردشتي مذهب هم مخ په تنزل روان وو۔ او دخارجي اثراتو په نتیجه کښې د اصلي زردشتي مذهب شکل بدل شوے وو۔ او وروستو بیا د سکندر

دحملے په نتیجه کښې څهٔ رنګ چه هخامنشي سلطنت د میځ نه لاړو۔ دغه شان د زردشتي مذهب ټوله بوده تنسته هم بدله شوه۔

# سکندرِ اعظم په کندهار کښې

لکه چه وړاندې مو وئیلي دي دایران عظیم الشانه سلطنت د یونانیانو دلاسه تباه شو. دایران او یونان دا آویزش ډیر پخوانے او د ساټرس د زمانے نه شروع شوے وو. د زرکیسز تر زمانے پورے چه د ایراني سلطنت دا اقتدار زمانه وه. یونانیان دایران دلاسه وهلے شول. ولے د دے وهلو ټکولو باوجود د هغوی د آزادۍ جذبه ژوندۍ وه. دڅلورم صدۍ ق.م په مینځ مینځ کښے چه دایران په سلطنت کښے د ضعف او زوال نخښے ښکارہ کیدے شوے وے. د هغه وخت یونان دخپلے آزادۍ او د ایران نه د بدل اخستلو مقصد ته په عملي شکل ورکولو کښے لګیا وو. او په دے کار کښے د مقدونیئے د بادشاه فیلپ لویه برخه وه.

فیلپ د سنه ۳۳۶ ق.م پورے په ایشیا باندے دحملے دپاره فوځونه او ټول انتظامات مکمل کړل ولے هم په دغه کال د یوجشن په موقع د یو یوناني دلاسه اووژلے شو. او د هغهٔ دا مقصد د هغهٔ په ژوند کښے پوره نهٔ شو. او دا کار د هغهٔ سکندر ته پاتے شو. چه د پلار نه پس د شلو کالو په عمر کښے د مقدونیئے بادشاه شوے وو. د ضروري انتظاماتو نه پس سکندر د خپل مشرقي مهم آغاز اوکړو.

په دغه ورځو کښے د ایراني تخت وتاج مالک دارایوش کردوما نوس وو. چه دفیلپ د مرګ نه څه لږ ورځے اګاهو تخت نشین شوے وو. دا سړے طبعًا کاهل، ارام پسند او بے پروا وو. اګرچه دخپل سلطنت د داخلي کمزوریانو نه خبر وو. ولے د فیلپ ناګهاني مرګ د دهٔ بے پروائي نوره هم زیاته کړه ولے څه وخت چه د سکندر د پیش قدمي نه خبر شو نو په تادۍ سره ئے د سکندر مقابلے ته فوځونه اولیږل.

د یوناني او ایراني فوځونو اوله مقابله د ګرانیکس نومے سیند په غاړه اوشوه. چه په هغے کښے ایراني فوځ تیښته اوکړه. د دوی ترمینځه دویم جنګ د "اسوس" په مقام اوشو د غه وخت د ایراني فوځونو کمان د دارایوش په خپل لاس کښے وو. لیکن دا ځل هم ایراني فوځونو تیښته اوکړه. او پریوانه سازوسامان ترنه پاتے شو.

دایران او یونان فیصله کن جنګ د «ګوګامیلا» په میدان کښې اوشو. داځل دارایوش دخپل طرف نه ډیره تیاری کړې وه. او دخپلو مشرقي صوبو نه ئې هم امداد غوښتے وو. او څه رنګ چه د زرکسیز په زمانه کښې د پښتنو فوځي دستے د ایران په مرسته کښې د یونان برخلاف جنګیدلی وے. دغه رنګ په دے جنګ کښې هم د «آراکوزیا»، د ستراپ (ګورنر) په ماتحتۍ کښې د پښتنو فوځۍ دستے شامل وے. داځل هم دایرانی فوځونو کمان دارایوش په خپله کاوه. دجنګ په آغاز کښې دایران تله درنه ښکاریدله. او ګمان کیدلو چه یونانیان به تیښته اوکړی. لیکن عین په تو دجنګ کښې د دارایوش رتهه بان په یو غشي اولګید. او پړمخ پریوتو. ایرانی فوځونو داخیال اوکړو. چه دارایوش مړشو. د مغلوبیت او تیښتے اثر سمدستی په ایرانی فوځ خورشو. دارایوش په ځائے د دے چه داغلط اثرئے لرے کړے وے. اوخپل ځان ئے خپلو فوځیانو ته ښکاره کړے وے. په خپله هم روګا مغلوب شو. او تیښته ئے اوکړه. د ده په تیښته ټول ایرانی فوځ تار په تارشو. دایو داسے شکست وو. چه دایران دوه سوه کلیزه شهنشاهی ئے د سکندر په جولۍ کښې واچوله.

په ایرانی سلطنت کښې د سکندر د مخ وهلو د پاره اوس څه بندیز نهٔ وو. دغه وجه وه چه سکندر پرله پسے ځایونه اونیول. او «پرسی پولس» ته راغے. دلته ئے قتل عام اوډیرخلق ئے بندیوان کړل او بیائے د رقص وسرود او شرابو مجلسونه ترتیب کړل. د رقص وسرود او شراب نوشۍ په یو مجلس کښې «تائیس» نومے یوے رقاصے د سکندر نه داخواهش اوکړو چه دے ته د اجازت ورکړے شي چه دخښایارشاه (زرکیسز) محل ته په خپل لاس اور ورته کړی. ځکه چه دا د هغه بادشاه محل دے چه هغه هم یو یونانی ښار «اکروپولس» (ACRO POLIS) سوزولے وو. په نشه کښې مخمور سکندر د دے داخواهش اومنلو. دا رقاصه ئے په غیږ کښې پورته کړه. او هغې محل ته په خپل لاس اور ورته کړو. سکندر او د هغهٔ امیران د اور د لمبو تماشے ته اودریدل. او دغه شان د هغه وخت د مهذب دنیا دا عظیم الشانه محل خاورے ایرے شو.

د رقص و سرود او شراب نوشۍ د مجلسونو نه چه سکندر په خود شو. نو د دارا په تکل شو. د تیښتے نه پس د یو بل اقدام په غرض دارایوش کرمان ته راغلے وو. دلته کښې «بسوس» چه د دارایوش دلوری نه د باختر ستراپ (ګورنر) وو. لیکن د هخامنشي اقتدارلوئے مخالف او دخپلے خود مختارۍ آرزومند وو. د یو څو نورو سردارانو په صلاح هغه اووژلو. او دغه شان د هخامنشي سلطنت دوه سوه کلیزه دوره د

دارایوش سوم په مرګ په سنه ۳۳۱ ق.م کښې ختمه شوه.

د «بسوس» خو دا خیال ووچه د دارایوش د مرګ نه پس به سکندر په دغه مفتوحه علاقو صبر اوکړی او یونان ته به ستون شي. او دغه شان به باختر او د هخامنشي سلطنت نورے مشرقي صوبے آزادے شي. لیکن د هغهٔ دا خیال غلط شو. د دارا د مرګ نه پس سکندر خپل ځان د هخامنشي سلطنت یو وارث اوګڼلو. او د دے سلطنت د ټولو علاقو د فتحه کولو اراده ئے اوکړه. او په دے غرض په «بسوس» پسے ور روان شو. او د هرات، درانجیانا یا زرنجیانا علاقے ئے فتح کړے. د زرنجیانا علاقه عربو د سجستان په نامه یاده کړی ده. او اوس ورله سیستان وئیلے شي. د دے نه پس سکندر د اراکوزیا صوبه هم فتحه کړه. د «اراکوزیا»[۱] نه مراد هغه علاقه ده چه د قندهار او غزني ترمینځه واقعه ده. دا علاقه عرب لیکوالو د «الرخج» په نامه ضبط کړی ده. او بیا د کابل په لور روان شو. په لاره کښې ځائے په ځائے د هغه پښتنو قبیلو لاسه ډیر اوتزنیدلو. کوم چه په غرونو او دشوارګذارو درو کښې میشته وے. ولے دے زیاتونو او کړاونو د سکندر په رفتار کښې څه فرق رانهٔ وستے شو. او هغه د کابل وادئ ته په نومبر سنه ۳۲۹ ق.م کښې راورسید. سکندر په کابل کښې هم ډیر اتال نهٔ شو. او کوه دامان ته راغے. دلته کوه هندوکش او په دے غره کښې واوریزے درے د هغهٔ په لاره کښې موجودے وے. نو د لاچارئ نه ئے دلته توقف اوکړو. او د خپل عادت مطابق ئے دلته هم یوه چاونړئ د سکندریه قفقاز په نوم آباده کړه.

د سنه ۳۲۹ ق.م په پسرلي کښې سکندر د خپل شپیتهٔ زره یوناني فوځ سره د باختر په تکل روان شو. او د «کوشن» په دره تیر شو. او اتلس ورځے پس «اندراب» ته اورسید. د هندوکش درو اوګړنګونو د سکندر فوځونو ډیر اوزبل. او دا لارے ئے په ډیرے سختئ اووهله. «بسوس» لا د خپلے چارے په فکر کښې نکیا وو. چه سکندر ئے په سر اودرید. د «بسوس» دا خیال ووچه یا خو به سکندر د هند په لور لاړ شي. او که سمدستي د هند تکل اونهٔ کړی نو د وطني خلقو قبائیلي جنګونه او د لارے کړاو به هغه دومره اتال کړی چه دهٔ ته به د مقابلے د تیارئ د پاره ښه موقع په لاس ورشي. ولے د سکندر حیرانونکي تګ د هغه په ټولو منصوبو یخ اوبهٔ تویے کړے. د بسوس ټول تال فوځ چه په اتهٔ زره ځوانانو مشتمل وو. د سکندر

---

[۱] د عیلامیانو په دوره کښې دا علاقه داراکوتي یا هیرووتي په نامه یادیده «اراکوزیا» د دے یوناني نوم دے. او عربو دا الرخج په لفظ یاد کړے دے. دا یو وسیع خطه وه. او په اکثرو احتمالاتو د قندهار او غزني ترمینځه علاقه پاندے مشتمله وه. او د موجوده کوټے ډیرن علاقه هم د دے خطے یوه برخه وه.

په ناڅاپي راتلو ویره واخست - او ټول تار په تار شو - بسوس د مجبورۍ نه سوګدیانې ته اوتښتید - ولې په ټوله علاقه کښې ئې دغلې او وښو ذخیرې تباه کړې - او د دې په وجه د سکندر فوځیانو ته ډیرې سختۍ ورپیښې شوې - به هرحال سکندر ټول مشکلات د پښو لاندې کړل - د باختر علاقه ئې فتحه کړه - او د بسوس په تعاقب کښې سوګدیانې ته لاړ -

د سوګدیانې نه مراد هغه علاقه ده چه په بخارا او ثمرقند مشتمله ده - دا علاقه د بکټریانا (باختر) نه په شمال د رود جیحون او سیحون ترمینځه ده - او د وادۍ زرافشان په زرخیزه خطه مشتمله ده - په دغه وخت کښې بسوس د خپل مقصد نه مایوسه ناجوړه پروت وو - او فوځونه ئې تار په تار شوی وو - سکندر چه د دې واقعاتو نه خبر شو نو بطلیموس ئې د هغهٔ د ګرفتارۍ د پاره اولیږلو - او د ګرفتارۍ نه پس هم د بیمارۍ په حالت کښې ئې او وژلو - د دې نه پس سکندر د سوګدیانې ټوله علاقه فتحه کړه - په دې جنګونو کښې ملک ته ډیر نقصان اورسید - علاقې شارې شوې - ښارونه تباه شول - ډیر خلق اووژلې شول - د سکندر فوځونو ته هم لوئې زیان اورسیدهٔ - ولې د دوؤ کالو د خونړو جنګونو نه پس د سکندر فتوحات په دې ټوله علاقه کښې پائې ته اورسیدل - او هغه د هند د سفر په تکل شو - د آئنده بغاوت د لرې کولو په غرض سکندر د ملکی خلقو نه هم ډیر ځوانان په خپلو فوځونو کښې شامل کړل -

د سن ۳۲۷ ق - م د پسرلی په ختمیدو سکندر د کوه هندوکش په درو راتیر شو - او د کوه دامان کڅۍ ته راغې - او په هغه چاونۍ کښې دیره شو چه دوه کاله اګاهو ئې آباده کړی وه - اوس دغه ځائې د موجوده «جبل السراج» سره متعین او شناخت شوې دې - د ضروری انتظاماتو نه پس سکندر په رود کوفن (کابل) پورې وتو - او نیکائیا (NICAEA) ته اورسیدهٔ، د دې ځائې شناخت او تعین په یقینی ډول نهٔ دې شوې - ځینې خلقو په خیال کښې دا مقام (کابل) وو - او ځینې ئې په جلال آباد کښې چرته یو ځائې ګڼي - سکندر لا په «نیکائیا» کښې وو - چهٔ د امبهی (د ټیکسلا راجا) سفارت د سکندر په خدمت کښې حاضر شو - او د تحفې په ډول ئې پنځویشت هاتیان د سکندر په خدمت کښې پیش کړل - او د سکندر دوستی او خوشنودی ئې حاصله کړه -

په «نیکائیا» کښې سکندر خپل فوځونه دوه برخې کړل - د فوځ یوه برخه ئې د «هیفاستیون» او «پروبیکاس» نومې دوؤ جرنیلانو په کمان کښې دامبهی د وفد په رهنمائی کښې په دې غرض اولیږله چه په اباسیند باندې د عبور د پاره پل اوتړی - او پیوکی لوتیس (PEAKILOTOOIES) فتحه کړی - دا په یقین سره نهٔ ده معلومه چه دا فوځ به د دره خیبر په موجوده لارې راتیر شوې

وی اوکه د ،، کاے ، لالپورے ،، سره به ئے چرته سیند عبور کړے وی او دکړې اوګندا وُ په لارے به دا وسنو مهندو په علاقه کنبې راتیر شوے او په دوآبه کنبې به رانوتے وی. او بیا دیئو کی لوټیش ته رارسیدلے وی. دا هم ممکنه ده چه د شلمان په کمځ کنبې دتهترے په خوا کنبې راوتلی وی. به هرحال ددے فوځ لاره هره یوچه وه، وه به. دا فوځ د پیوکی لوټیش په ریاست کنبې داخل شو. د دے ریاست ګورنر آستس ( ASTIS ) نومیدهٔ. احتمال لری چه دا سړے به هم د دارایوش سوم دلوری نه د دے ریاست ستراپ (ګورنر) وو. او دبسوس په شان به ئے دخپل خود مختاری اراده لرله. ځکه ئے د یونانی فوځونو مقابله اوکړه. یونانیانو ښار محاصره کړو. دا محاصره یو میاشت اوږده شوه. آخر د ریاست سربراه ،، آستس ،، اووژلے شو. یونانیانو دا ریاست سانګایا ( SANGAYA ) نوے یو سړی ته دوباره ورکړو. دا سړے د سابق سربراه (آستهس) سخت دښمن وو. سکندر د هند د تلو نه اول د ده اطاعت نامه منظوره کړه.

د سکندر دحملے په وخت کنبې ګندهارا او د مغربی پاکستان ټوله علاقه په وړو وړو ښتونو کنبې تقسیم وه. او دا ریاستونه به څپل مینځ کنبې د یوبل سره په مشت ګریوانئ کنبې اخته وو. دغه وجه وه چه د سکندر کار په دے علاقه کنبې نسبتاً آسان شو. د اباسیند نه په قبله چه کوم ریاست وو. دهغ صدر مقام ،، پښکلاوتی ،، وو. چه یونانیانو د ،، پیوکی لوټیش ،، په نامه ذکر کړے دے.

دا ریاست دخپل صدر مقام دنانځ په وجه د پښکلاوتی په ریاست مشهور وو. پیوکی لوټیش یا پښکلاوتی هغه ځائے وو چه اوس دهغ تعین د موجوده چارسدے او پرانګ ترمینځ شوے دے. دا ښار دخپل ریاست د صدر مقام نه علاوه په تجارتی لحاظ سره هم ډیر اهم وو. او د وسط ایشیا او هند په مرکزی شاهراه واقع وو. دا ښار د پاکستان په قدیم تاریخ کنبې ډیر اهمیت لری. لیکن د بده مرغه ددے په حقله کافی معلومات لا تراوسه نهٔ دی حاصل شوی.

د اباسیند نه په نمرخاته ریاست د ټیکسلا په نامه مشهور وو. دا یو آباد او خوشحاله ریاست وو. او ددے وجه ددے ریاست بهترین قوانین وو. ددے ریاست صدر مقام هغه ځائے وو چه اوس دهغ تعین د ،، بهیرمنډ ،، په مقام شوے دے. دا ځائے د سرائے کالا سره نزدو د موجوده راولپنډئ نه شل میله لرے قطب قبلے ته واقع دے. دهند د قدیم ښارونو په لړکنبې داوړومبی ښار وو چه د وادئ کابل د لوری نه به د اباسیند عبور کولو نه پس په درے ورځو کنبې قافلے دلته رارسیدلے. د دے ښار تجارتی شهرت دهغه زمانے په ټوله مهذبه دنیا کنبې خور وو. د تجارتی شهرت نه علاوه دا ښار د علم و فضل هم لوئے

مرکز وو - او د علم متلاشیان به د دنیا د کُټ کُټ نه دلے راتلل - او په اتلسو علمونو کښے به ئے د فضیلت سند حاصلولو - د روایاتو مطابق د هند وانو مشهور رزمیه کتاب « مهابهارت » په اول وار په دے ښار کښے لوستلے شوے وو - د ننۍ زمانے د راولپنډۍ په شان د هغه زمانے ټیکسلا به هم د شمال مغرب دلورې نه د هند و پاکستان د حفاظت لویه دروازه گڼلے شوه -

د ټیکسلا نه پورته غرڅیزه علاقه د اوراسا ( URASA ) او ابهی سارا ( ABHI SARA ) (یعنی د نوشهره او پونچ علاقے) په ریاستونو مشتمله وه - د ټیکسلا سویل ته د ستر پورس او کوچنی پورس ریاستونه وو - دا هغه خلق وو چه د رګ وید په سرودونو کښے د ذکر شوو قبائلو په لړکښے د « پوروګانو » په لفظ یاد شوی دی - د ستر پورس ریاست د جهلم سیند او چناب ترمینځه او د هغهٔ د وراره کوچنی پورس ریاست د بیاس او راوی ترمینځه واقع وو - د سیند علاقه هم په وړو وړو ریاستونو کښے تقسیم وه - د سوات علاقه په دغه زمانه کښے د « اودیانا » په نامه مشهوره وه - د سکندر د حملے په وخت کښے د مغربی پاکستان سیاسی وضعیت هم په دے ډول وو[ل]

د دریائے کابل قطب ته هغه غرڅیزه علاقه چه د رود کونړ پنجکوره او دریائے سوات نه سیرابیږی - د سکندر د حملے په وخت کښے په دے لویه علاقه کښے درے قبیلے اوسیدلے - چه د سکندر د مؤرخینو له خوا د « اساکینی ګوری او اسپاسی » په نومونو یاد ے شوے وی - دا قبیلے ډیرے سرکښے او سرتیزے وے - دغه وجه ده چه سکندر د دے خلقو د تسخیر په غرض د فوځ دویمه حصه په خپل کمان کښے واخستله - او په وادۍ کنړ کښے داخل شو - په رود کوئیس (KO-ES) چه مراد ورنه غالباً رود « الی شنګ » دے - په ډیر زیار پورے وتلو - او په اول وار د اسپاسی قبیلے سره مقابل شو - د دے خلقو د خپل ښار مدافعت داسے په شدت او حدت سره اوکړو چه سکندر ئے حق حیرانه کړو - سکندر د دوی د لاسه په خپله هم زخمی شو - او دده درے جرنیلان هم ژوبل شول - د پښتنو د دے سخت مدافعت سکندر وار خطا کړو - او له ډیر قهرنه ئے هغه ټول جنګی قیدیان اووژل - کوم چه ئے وخت بے وخت نیولی وو - ولے په دے خبره هم د « اسپاسیانو » د مدافعت او مقابلے جذبه کمه نهٔ شوه - آخر د یو خونړی جنګ نه پس مقدونیان کامیاب شول - او د دے خلقو ښار پریښنو د ، غرونو ته او تښتیدل - لیکن دوی د تیښتے په وخت کښے په ډیر شمیر کښے د سکندر د لاسه اووژلے شول - چونکه سکندر د دے ښار

ل تاریخ هندِ قدیم - پروفیسر مرجم دار -

په نیولوکښې ډیرکړیدلے وو- نو دا ښارئے بلخې وران کړو- او اوس ئے د نوم نشان درک نۀ لګی.

د دے نه پس سکندر د "اسپاسیانو" د سردار د نیولو په غرض روان شو- په رودکونړ (EUASPLA) راپورے وتو- اوشاید چه د هندو راج په غرونو باجوړ ته راکوز شو- او یو ښار ته راا ورسید- چه یونانیانو د "اریګائن"[1] په نامه یادکړے دے- لیکن اسپاسیان د وړاندے نه تښتیدلی وو- او ښار ته ئے اور ورته کړے وو- د سکندر فوځونه په دے خلقو پسے غرونو ته اوختل- په دے جنګونو کښې ډیر یونانیان هم زیان شول- ولے مقامی خلق هم ډیر اووژلے شول- او څلویښت زره د سکندر د فوځونو په لاس بندیوان شول- دا علاقه ډیره زرخیزه او آباده او په څاروو مړه پټه وه- سکندر د دے علاقے د خلقو سره ډیرے رحمانه سلوک اوکړو- او د خراج او تاوان په ډول ئے د دوی نه دوه لکه او دیرش زره غواګانے او غوایان واخستل- د څاروو د دے شیر نه په هغه زمانه کښې د دے خلقو د شتۀ من توب اندازه لګیدے شی- دا غوایان او غواګانے دومره ښکلی او ځربے وے چه سکندر د دے نه ځنے یونان ته هم اولیږلے- د اسپاسیانو دا ښار د خپل محل وقوع له مخه ډیر اهم وو- نو سکندر د دے د دوباره آبادولو حکم اوکړو- او "کراتیروس" نومے یوافسر ته ئے د دے ښار د تعمیرکار حواله کړو- او په خپله د اسپاسیانو سره د یوځو نورو جنګونو نه پس چه په هغې کښې مقامی خلقو ته ډیر زیان اورسیدۀ- د اساکینانو (ASSACANI) په علاقه د حملے په غرض راروان شو او رودګوړی[2] ته راا ورسید-

د ګوریانو (GURIANS) په علاقه کښې چا د سکندر مقابله او نۀ کړه- سکندر په دے سیند هم په ډیرکړاو پورے وتو- او د اساکینیانو په علاقه کښې داخل شو- هغه علاقه چه اساکینیان پرِ میشته وو- ډیره وسیعه او فراخه وه- او د تالاش نه ترا باسیند غزیدلی وه- په دے کوز سوات، بونیر او د بونیر په قطب وادیانے هم شاملے وے- چونکه دا علاقه ډیره لویه او خوره وره پرته وه- نو هغه ځایونه چه سکندر په دے علاقه کښې فتح کړی وو- نن ورځ په یقینی ډول د هغو د محل وقوع او نومونو تعین ډیرګران دے- البته دا درست ده چه لکه د نن زمانے په شان به په هغه زمانه کښې کومه نیغه لارچه اهمیت ئے لرلو- هغه به هم هغه وه چه د پنجکوړے نه شروع کیږی- د تالاش په مینځ په کاټکله تیریږی- او د سوات کځئ ته راا وځی- دغه لار په جنګی نقطه نګاه سره اول هم ډیره اهمه وه- او نن زمانه کښې هم لوئے اهمیت

---

[1] د "اریګان" محل وقوع د باجوړ په علاقه کښې د نواګے په خواوشا کښې ګڼل شی- [2] د "رودګوری" نه مراد پنجکوړے سیند دے.

لری - او د چکدرې په قلا سره د دې حفاظت کیږی - سکندر چه څومره مشهور او مضبوط ښارونه فتح کړی وو - هغه هم ټول د سوات په کښتۍ او د اساکینیانو په دې علاقه کښې وو - دا علاقه دابتدا نه آباده او زرخیزه وه - په دې علاقه کښې چه د ټولو نه اول سکندر په کوم ښار حمله کړی وه هغه د «مساگا» ښار وو - د تالاش یعنی (دمساگا) اساکینیانو د سکندر مقابلې ته چه څومره فوځ راایستلے شو - هغه دوه زره سواره، دیرش زره پیاده سپایان، او دیرش سوه هاتیان وو - دجنګ په آغاز کښې دې خلقو ته د سکندر دې شمیره فوځونو سره په میدان کښې مقابله کرانه ښکاره شوه - نو دوی د ښار د ننه په مقابله اکتفا اوکړه - دخپل ښار د حفاظت په تدبیرو نو کښې ئے ښه کړاو اوکړو - سکندر د دوئ ښار محاصره کړو - لیکن دڅلورو ورځو د جنګ نه پس هم د محصورینو په همت کښې څه فرق رانغلو - په یوه حمله کښې سکندر پخپله هم بد بدژ وبل شو - په ابتداء کښې خو دهٔ خپل زخم ته څه توجه اونهٔ کړه - لیکن څه وخت چه زخم سوړ شو - او د دردونو نه ناقلاره شو نو بے اختیاره ئے اوویل چه خلقو خو به ماله ابنِ مشتری وئیل وے اوس معلومه شوه چه زهٔ هم یو عام انسان یم - په دې جنګ کښې د اساکینیانو سردار اووژلے شو - او ددې په وجه د مدافعینو زړونه مات شول - د صلح درخواست ئے اوکړو او سکندر د دوی دا خواست منظور کړو -

د صلح په عرض د اساکینیانو ملکه دخپلو امیرانو د بیګماتو د یوې جرګې سره د سکندر په خدمت کښې حاضره شوه - په زرینو جامونو کښې د شرابو دور شروع شو - ملکې خپل ماشوم ځوئے د سکندر په پښو کښې کینښود او د معافۍ سره ئے ددې خبرې هم خواست اوکړو چه ددې ملک هغه پخوانی اعزازات دِ په حال پاتې شی - ځکه چه هغه به ملکه بللے شوه - سکندر ددې دا خواست قبول کړو - دځنې خلقو دا خیال دے چه په ملکه باندې د سکندر دا مهربانی د رحم دجذبے زیر اثر نه بلکه د هغې دحسن او ښکلې برکت وو - به هرحال څه موده پس د ملکې یو ځوئے هم اوشو چه نامه ئے سکندرکینښودلے شوه -

د سکندر او «مساگا» په دې جنګ کښې د اساکینیانو دامداد د پاره دځنې ګوانډی ریاستونو لکه د «اوراسا» او ابهی سارا وغیره نه فوځۍ دستې هم راغلی وے - د صلح نه پس سکندر ددې هندی فوځیانو جان بخښۍ ته په دې شرط تیار شو چه دوی به د سکندر په فوځونو کښې شاملیږی - په اوله کښې دې فوځیانو دا شرط اومنلو او د دوی د پاره د ښار نه بهر په یوې غونډۍ کیمپ اولګولے شو - ولے وروستو دغه فوځیانو د سکندر د پاره د خپلو وطنیانو سره د جنګ کولو نه انکار اوکړو او دشپې په تیارهٔ کښې ئے د تښتیدلو منصوبه تیاره کړه - لیکن سکندر د دوئ دا رادې نه خبر شو - او

ددوی دوړلو حکم ئے اوکړو ـ یونانی فوځونه ددوئ نه تاو شول ـ دے سپایانو هم دبے عزتئ په ژوند مرګ غوره کړو ـ دیونانیانو سره ئے سخته مقابله اوکړه ـ په خپله هم ټول مړه شول ـ او ډیر یونانیان ئے هم دځان ملګری کړل ـ

**بازیرا:**ـ بازیرا یو بل ریاست وو ـ چه د "ساګا" دتسخیر نه پس سکندر دهغے دتسخیر اراده اوکړه او دکوئ نوس ( KOI NOS ) نومے یو یونانی کماندار په ماتحتئ کښے ئے فوځ وراولیږلو ـ د سکندر دا خیال وو چه د ساګا په تسخیرکیدو به د "بازیرا" دخلقو زړونه مات شوی وی ـ او هغوی به مقابلے ته مخ او نه نیسی ـ لیکن د "بازیرا" خلقو د سکندر دا توقع غلط ثابته کړه ځکه چه د دوئ قلا په اوچت غر او دومره مضبوطه وه چه په آسانه د فتح کیدلو نه وه ـ د دے قلا دننه دوی د یونانیانو مدافعت شروع کړو ـ او خبره اوږده شوه ـ

**اورا:**ـ په دے علاقه کښے "اورا" یو بل ښار وو ـ چه سکندر د هغ په تسخیرځپل یو افسر اطالوس ( ATALOS ) لیږلے وو ـ او ورته ئے د خپلو راتلو پورے د قلا د محاصره کولو هدایت کړے وو ـ چنانچه سکندر چه د مساګا دتسخیر نه فارغ شو ، نو د "اورا" په لور روان شو ـ د اورا مدافعین دسکندر په راتلو زیات پریشان شول ـ او سکندر دا ښار فتحه کړو ـ د دے ښار په فتح کیدو د بازیرا دخلقو زړونه هم پریوتل ـ اوکوم وخت چه هغوی د بازیرا په لور د سکندر د راتلو نه خبرشول نو د مقابلے خیال ئے پرینبود ـ شپه په شپه ئے قلا خالی کړه ـ او د "اورنوس" قلا ته چه په دغه علاقه کښے چرته دګړنګو غرونو په مینځ کښے وه اوتښتیدل ـ او د "اورنوس" په لور د دے خلقو تیښتے دسکندر په زړه کښے د "اورنوس" د تسخیر تلوسه هم پیدا کړه ـ ولے دا اراده ئے په عارضی طور ملتوی کړه ـ او د "بازیرا" او "اورا" د تحفظاتو نه پس په خپله د پاینبور میدانی علاقے ته راکوزشو ـ او پشکالاوتی ته راغے ـ او دلته کښے ئے د دے ریاست ډکوزنر اطاعت نامه قبوله کړه ـ او دغه شان ئے دا ټوله علاقه په قبضه کښے راغله ـ د دے نه پس په اباسیند باندے د پورے وتلو نه وړاندے ئے دخپلو ټولو انتظاماتو جاج واخست ـ او دخپل من منیا کولو نه پس دوباره د اورنوس د فتح په غرض روان شو ـ

د "اورنوس" قلا د سختو او دنګو لوړو غرونو په مینځ کښے په یو داسے نا قابلِ تسخیر ځائے باندے آباده وه ـ چه هغے ته د ورختلو څه هیڅ لار نه معلومیدله ـ سکندر د دے قلا په تسخیر کښے ډیر پریشان شو ـ ولے د یو مقامی سړی په مرسته ئے لار معلومه کړه ـ دے سړی د سکندر نه رشوت واخست ـ او د قلا د تسخیر طریقه ئے ورله اوښودله ـ به هرحال د "اورنوس" استوګنو درے ورځے د سکندر مقابله اوکړه ـ لیکن بیائے شپه په شپه قلا خالی کړه ـ او چرته بل ځائے ته اوتښتیدل ـ قلا د

سکندر لاس ته راغله ۔ د فتحے نه پس سکندر د شکرانے په دول د جنګ او عقل د ارباب الانواعو د پاره یو یو مذبح تیار کړو ۔ او ډیرے قربانئ ئے اوکړے ۔ او بیائے دلے یونانی حاکم مقرر کړو ۔ او د دے ځائے نه دوباره د اساکینیانو ملک ته راغے ۔ ځکه چه د دے خلقو په اورنوس کښے د سکندر دمصروفیت په وجه بغاوت کړے وو ۔ د سکندر او د دے خلقو د امقابله د دیرتا ( DYRTA ) په مقام شوی وه ۔ په دے کښے هم سکندر کامیاب شو ۔ ولے دا خلق د سکندر اطاعت منلو ته تیار نهٔ شول ۔ خپل وطن ئے پریښود ، په اباسین پورے وتل ۔ او دا بهٔ سارا علاقے ته لاړل د دے پس سکندر په غالب ګمان د چملے په علاقه کښے راتیر شو ۔ او د هغهٔ فوځونو سره چه د " هیفاستون " او " پردیکاس " په ماتحتئ کښے په اباسیند باندے د پل ترلو په غرض دوړاندے نه رالیږلی وو ۔ د " اوهند " ( رهنډ ) په مقام یو ځائے شو ۔ او د دے ځائے نه په فروری کال ۳۲۶ ق ۔ م کښے سره د ټولو فوځونو په اباسیند پورے وتلو ۔ او د ټیکسلا په ریاست کښے داخل شو ۔

د ټیکسلا ښار په څلورمه صدئ ق ۔ م کښے ښهٔ آباد او یو علمی او تجارتی مرکز وو ۔ د سکندر د حملے په وخت کښے دا دیو داسے ریاست صدر مقام وو ۔ چه دا باسین او جهلم سیند ترمینځه علاقه پکښے شامله وه ۔ په دغه وخت کښے د دے ریاست راجه امبهی نومیدهٔ ۔ چه یونانیانو د " اسفی " په نوم یاد کړے دے ۔ احتمال لری چه دے به د هخا منشی شهنشاه دارا یوش سوم د لوری نه د دے ریاست ستراپ ( ګورنر ) وو ۔ او د ایرانی سلطنت شامه صوبه ( هندش ) به هم په دغه علاقه مشتمله وه ۔

د ټیکسلا نه په مشرق د ستر پورس ریاست وو ۔ چه د جهلم او چناب سیند ترمینځه علاقه باندے مشتمل وو ۔ د " امبهی " او " پورس " ترمینځه سخت مخالفت وو ۔ له دے کبله امبهی د سکندر حمایت حاصل کړو ۔ سکندر په ټیکسلا کښے څو ورځے په آرام تیرے کړے ۔ او بیا د پورس مقابلے ته روان شو ۔ امبهی هم د امداد په طور خپل پنځه زره فوځ دهٔ له ورکړو ۔ سکندر د پورس په جنګ کښے هم کامیاب شو او د بیاس سیند پورے علاقه ئے فتحه کړه ۔ او د وړاندے تلو اراده ئے هم لرله ۔ ولے فوځ ئے انکار اوکړو ۔ او په دے وجه د خپل فوځ په مخکښے ناچاره شو . په دغه ځائے کښے ئے د خپلو فتوحاتو په یادګار کښے دولس لوئے لوئے قربان ګاهونه تیار کړل او بیا د وطن په تګ شو ۔

په ګندهارا کښے د سکندر قیام د یو کال نه هم کم وو ۔ او دغه موده ئے هم په جنګونو کښے تیره کړی وه ۔ دغه وجه ده چه د سکندر په واقعاتو کښے موبږ ته د پښتنو په حقله څه قابل

ذکرمعلومات په لاس نهٔ راځي - د پښتنو په دے علاقه کښے چه سکندر کوم کوم ښارو نه فتحه کړی دی هغه ساګا، بازیرا، اورا، اورنوس، او دیرتا دی - په دے ډول یونانی لیکوالو چه په دے علاقو کښے د کومو قبائیلو نامے اخستی دی هغه اسپاسی، ګوری او اساکینی دی - ترکومه چه د دے ښارونو د محل وقوع متعین کولو او د اوسنۍ زمانے د نومونو سره د دے ځایونو د نومونو د مطابقت تعلق دے په دے باب کښے د عالمانو خیالات مختلف دی - او حقیقت دا دے چه د دومره پخوانۍ زمانے نومونه د اوسنۍ زمانے د نومونو سره مطابق کول او د هغے محل وقوع متعین کول ډیر ګران کار دے - بیا هم په دے لړ کښے چه عالمانو څه وئیلی دی هغه په لنډ ډول دا سے دی -

**مساګا:-** د دے ښار په باب کښے ځنے عالمان دا وائی چه دا مقام د ناواګئ نه څه لږ شان په فاصله باندے د مټکني سره او یا د دے پسره چرته نزدو یو ځائے وو - ځنے عالمان د دے ځائے تعین د ریاست سوات د اوسنی «منګلور» په مقام کوی - منګلور د سوات په ریاست کښے د هغه سړک په ښی لور د غرهٔ په لمن کښے یو ورکوټے کلے دے - کوم چه د سیدو شریف نه بحرین ته تلے دے - لیکن دا قیاسیات درست نهٔ معلومیږی - ښاغلے کیرو د «مساګا» ښار د تالاش په کځئ کښے د دیرچکدرے په سړک د چکدرے نه اتهٔ میله د قطب په لور په هغه ځائے کښے چرته آباد ګڼي - کوم ځائے چه ن زمانه کښے هلته په یو بڼ کښے د «مجاور بابا» په نوم د یو بزرګ مزار دے - د دے ځائے قدرتی تحفظات او ماحول د هغه تفصیلاتو سره ډیر مطابقت لری کوم چه د «مساګا» په حقله یونانی مؤرخینو بیان کړی دی - او دا بلکل قرین قیاس معلومیږی چه «مساګا» به هم دلے آباد وو -

**بازیرا:-** د مسټر سټین په خیال کښے بازیرا په هغه مقام اباد وو چه ن ورځ هلته په مینځنی سوات کښے د «بریکوټ» کلے آباد دے - دا ښاغلے فاضل وائی چه د «بازیرا» په حقله چه کوم تفصیلات یونانی مؤرخ آرین لیکلی دی - هغه د «بریکوټ» سره حیرت انګیز مشابهت لری - د دے نه علاوه د بریکوټ او بازیرا مطابقت د فقه اللغت د مخه هم کیدے شی - د دے وائی چه په بریکوټ کښے د کوټ لفظ د اوسنۍ زمانے اضافه ده - او اصل لفظ «بیرا» یا «باړا» دے - او دا هغه لفظ دے چه د بازیرا د پاره یو بل یونانی مؤرخ کورټیس (CURTIUS) استعمال کړے دے - نو د آرین «بازیرا» او د کورټیس «باړا» یا «بیرا» هم یوه نامه ده - او دغه «بیرا» یا «باړیرا» په وروستۍ زمانه کښے بریکوټ شو - اوس چه د بریکوټ محل وقوع او د «بازیرا» په حقله د یونانی مؤرخینو تفصیلات په نظر کښے او ساتلے شی نو دا تعین یقینی او قطعی معلومیږی

د قدرتي استحکاماتو نه علاوه د دے مقام نه نه صرف دکوزاو برسوات د شاهراه حفاظت کیږی بلکه د هغه لارے حفاظت ترینه هم کیږی. کومه چه د کړاکړ په دره بونیر ته اوځي. او بیا د ملندرئ او امبیلې په درو د مردان او سمے علاقے ته وررسی ـ او دا هغه شاهراه ده. چه مغلو ځپل حکومت په زمانه کښے په یوسف زو باندے د حملے د پاره هم استعمال کړی وه ـ

**اورا:**- د مسټر سټن په خیال کښے دا مقام د بریکوټ نه څومیله پورته د "اوډیګرام" په خوا کښے هغه ځائے وو چه اوس د "راجاګیرا" په قلا یادیږی. دلته کښے هم په ننه زمانه کښے د یو بزرګ مزار دے. د قدرتي استحکاماتو له خوا دا تعین هم ممکن او درست معلومیږی. ولے د مسټر کیرو په خیال کښے دا مقام چرته په بنیر کښے د "ډګر" په خواوشا کښے واقع وو.

**اورنوس:**- د اورنوس غر د څنے عالمانو په خیال کښے د مهابڼ غر دے. لیکن دا درست نه معلومیږی ـ مسټر سټن (MR·STEIN) د دے مقام شناخت او تعین هم په یقیني ډول کړے دے. د دهٔ په خیال کښے "اورنوس" هغه ځائے وو چه اوس د کانړا غوربند د درے نه پورته داباسین په بنئ غاړه د "پیرسر" په نامه یادیږی ـ دلته تراوسه د "اُرنا" یا "اُرنړا" په نوم یو ځائے شته دے. او دا سے معلومیږی چه د دے ځائے هغه پخوانئ ریښه تر اوسه ژوندئ ساتلی ده ـ

**دیرتا:**- د دے ځائے شناخت په یقیني ډول نهٔ دے شوے. څنے عالمان د غه ځائے د مهابڼ نه په قطب چرته یو ځائے ګڼي ـ

اوس به د هغه قبائیلو جاج واخلو ـ د چا سره چه سکندر په دے علاقه کښے جنګیدلے وو. دا قبائیل د اسپاسی ګوری، او اساکیني په نامه یادشوی دی ـ د سکندر مقابله اول د اسپاسی قبائیلو سره شوی ده ـ دا سے معلومیږی چه دا قبائیل په کونړ او باجوړ دواړو علاقو کښے استوګن وو ـ او د دوئ صدر مقام په باجوړ کښے وو ـ د غه ځائے یونانیانو د "اریګاڼ" په نامه یاد کړے دے. د دے قبائیلو د اصل نسل، ژبے، ژوند ژواک او نورو حالاتو په حقله څه واضح اشارات موبز. د سکندر په دے واقعاتو کښے نهٔ دی لیدلی. په "اسپاسی کښے یو جُز (اسپا) د اوستائ ژبے لفظ دے. چه معنیٰ ئے آس ده. نو د اسپاسی نه مراد شو د آسونو خاوندان یا "د آسونو پالونکی" په پښتو ژبه کښے د اوستائ (اسپا) په ځائے (اس-اسپه) وئیلے شی ـ نو د دے لفظ نه دا قیاس مرسته موی چه اسپاسیانو به یو دا سے ژبه وئیله چه د باختری ژبے سره به ئے نزدو تعلق وو. او دا ژبه پښتو کیدے شی ـ "اسپاسیان" د ګندهارا په پوله د قطب په لور آباد وو ـ او د ګندهاریانو په باب کښے موبز. د زرکیسز د فوځونو

په لړ کښې د هیرو ډوټس د خولې نه دا اوریدلي دي. چه ګندهاریان په جامه او وسله کښې بیا و د باختریانو په شان وو. نو موږ دا قیاس کولې شو چه د اسپاسیانو جامې او وسلې به هم د ګندهاریانو او د باختریانو په شان وې ځکه چه دوی به د ګندهاریانو سره ضرور تعلق لرلو. او د دې باهمی تعلق او ربط وضبط په وجه به د دوی تمدن د ګندهاریانو نه متاثر وو. او س که د ګندهاریانو ژبه پښتو وه. او یقینًا به پښتو وه. نو د دې اسپاسیانو ژبه به هم پښتو وه. او دوی به هم د ګندهاریانو هم نسل او پښتانه وو. اګرچه په ژبه او ژوند ژواک کښې به ئې لږ ډیر فرق وو. اوس که چرې دا قیاس درست وی نو دا وئیل به غیرموزون نه وی چه اسپاسی هغه خلق وو چه نن ورځ په پښتنو قبائیلو کښې د " یوسف زی " په نامه مشهور دی.

د " اسپاسی " او یوسف زی ترمینځه د فقه اللغت له مخ مطابقت کیدې شي. دا لفظ اسپاسی) یو بل یونانی مؤرخ سټریبو د هپاسي ( HEPPASII ) په شکل کښې هم ضبط کړې دې. د دې نه دا معلومیږی چه اصل لفظ څه بل څه وو. لیکن یونانیانو د خپلې لهجې مطابق " اسپاسي " یا هپاسي لیکلې دې. کیدې شي چه دا لفظ " اسپ سي " یا " اسپ زی " وی او یونانیانو په خپله لهجه کښې اسپاسي لیکلې وی. د حرف (س) او (ز) د یو بل په ځائې استعمال په آریائي ژبو کښې مروج دې. لکه څه رنګ چه په پښتو کښې (ج - ژ - ز) په ځنې ځنې لفظونو کښې د یو بل په ځائې وئیلې شي. په دې بنا " اسپ سي " یا " اسپ زی " یو لفظ شو. دا احتمال هم ممکن دې چه شاید دا قبیله به د سکندر په وخت کښې په " اسپازی " موسومه وه. او یونانیانو به په خپله لهجه کښې د " اسپازی " په ځائې اسپاسی لیکلې وی. په لفظ " اسپا " کښې چونکه (الف) د علت حرف دې. نو ممکنه ده چه د زمانې په تیریدو سره دا استعمال نه وتلې وی. او لفظ اسپ زی پاتې شوې وی. د پښتو ژبې په خپل (الف با) کښې (ف) نشته. او د دې په ځائې (پ) وئیلې شي. په عام استعمال کښې نن ورځ هم " یوسف زی " ته " اِسپ زی " یا " ایسپ زی " وئیلې شي. اِسپ په لفظ " یوسف " په ډیرې وروستۍ زمانه کښې یعنې د اوولسمې صدۍ په آغاز کښې چه د غه وخت د پښتنو شجرې لیکل شروع شوې. د اسرائیلیت د نظرئې زیر اثر بدل شوې دې. نن ورځ ټول پښتانه د غې قبیلې ته او په خپله دا قبیله هم خلځ پټان ته اِسپ زی یا ایسپ زی وائي. او لفظ یوسف زی صرف په کتابونو کښې لیکلې شي. او صرف تعلیم یافته خلق ئې د خپلې کتابي مطالع په رڼا کښې وائي. او لیکي ئې. به هر حال دا ډیره قرین قیاس ده. چه دا " اسپ سي " یا " اسپ زی " او د سکندر د زمانې اسپاسي هم هغه خلق دي چه وروستو د شجره نویسو له خوا په " یوسف زی " مشهور شوی دي. د یوسف زو خپل قومي روایات دا وائي چه دوی د دې خپلې موجوده علاقې ته د قندهار

د علاقې نه په هجرت راغلي دي.

دا روايات چونکه په زباني او افواهي معلومات مبني دي. په دې بنا ډيره ممکنه ده چه يوسف زي قبائيل به د سکندر د حملې په وخت کښې د کونړ او باجوړ په علاقه کښې ميشته وو. او وروستو به ئې د دې علاقو نه هجرت کړې وي. او د دې خپلې موجوده علاقې ته به راغلي وي.

**ګوري:**- د سکندر په دې حمله کښې بله قبيله د "ګوري" په نامه ذکر ده. د دې قبيلې په حقله سوا د دې نه چه دا خلق د "رود ګوري" په غاړه آباد وو. نور څه معلومات نشته. د يونانيانو "ګورائيوس" او په مها بهارت کښې ذکر شوې لفظ ګوري د سنسکرت ژبې او يو لفظ دې. او د "رود ګوري" پيژندګلي د رود پنجکوړه سره شوې ده. دا نوم د دې قياس مرسته کوي چه د سکندر د حملې په وخت کښې د پنجکوړې ډير په علاقه کښې دا سې خلق آباد وو چه په ژبه ئې هندي اثر غالب وو. او د دوي روابط د باختريانو په نسبت د هنديانو سره زيات وو. په اکثر احتمالاتو د دې خلقو د سکندر اطاعت ته په چپه خوله غاړه ايښې ده. د "ګوري" قبيلې د شناخت په حقله به دا وئيل بې ځايه نه وي چه که چرې د "اسپاسي" او يوسف زي مطابقت جائز اومنلې شي. نو د "ګوري" نه به مراد هغه خلق وي چه دا شجره نويسو له خوا د غوريه خيلو په نامه ياد شوي دي. "ګوري" او "غوري" بيد و يو لفظ دې. (غ او ګ) دواړه توري د يو ځ کورنۍ دي په شرقي هجرت کښې د هند په لور د (غ) او (ګ) ته مائل کيږي. احتمال لري چه دا (لفظ ګوري) به په مقامي ژبه (پښتو) کښې (غوري) وو. او هنديانو به د خپلې لهجې مطابق د "غوري" په ځائې "ګوري" ضبط کړې وي. او په دوي پسې به يونانيانو هم دغه لفظ د خپلې لهجې مطابق "ګورايوس" ليکلې وي. "ګوري" او "اسپاسي" قبيلې د سکندر په وخت کښې دواړه ګاونډي قبيلې وې. شجره نويسو هم دا خلق په خپل مينځ کښې تربوران او د يو نيکه اولاد ظاهر کړې دې. د دې نه هم دا قياس مرسته موي چه "يوسف زي" او "غوريه خيل" به هغه قبائيل وي چه د سکندر په وخت کښې د "اسپاسي" او "ګوري" په نامه ياد شوي دي.

**اساکيني:**- د سکندر په حمله کښې دريمه قبيله د "اساکيني" په لفظ ضبط ده. دا خلق د سکندر په وخت کښې د تالاش د کڅۍ نه واخلې تر بونير پورې په ټوله علاقه کښې ميشته وو. دا لفظ (اساکيني) هم په څه نه څه شکل کښې د "آس" سره تعلق لري. يعنې څه رنګ چه په اوستائي ژبه کښې "اس" ته "اسپا" وئيلې شي. دغه رنګ په سنسکرت کښې اس ته "اسوا" وئيلې شي. د "اسواکا" په نامه په مهابهارت کښې هم څينې قبائيل ذکر دي. چه د هند په لرې

اطرافو کښې د شمال مغربي علاقو استوګن وو - امکان لري چه لفظ "اسواکا" به په مقامي ژبه کښې په "اساکا" بدل شوے وي - او دغه لفظ (اساکا) به یونانیانو دخپلې لهجې مطابق "اساکیني" ضبط کړے وي - د دے لفظ نه هم دا قیاس مرسته مومي چه د دے خلقو په ژبه هندي اثرات غالب وو - او د دوی تعلقات به د باختریانو په نسبت د هندیانو سره زیات وو - په دے موقع که موږ د هیرودوتس هغه حوالے ته پام اوکړو - په کومه کښې چه دا مؤرخ د "کاسپتروس" ښار (چه د پکتیکا په ملک کښې دے -) په پوله باندے د قطب په لور د ځینې "نورو هندیانو" ذکر کوي - او دا سے وائي چه دا "هندیان" د (اصلي هندیانو) په نسبت زیات دلاور او جنګیالیان دي - او د ژوند په لارو چارو کښې د باختریانو په څیر دي -" نو موږ به دا اووایو چه د هیرودوتس د "نورهندیان" به هم هغه خلق وو چه د سکندر د زمانے یوناني مورخینو د اساکیني "کوري او اسپاسي" په الفاظو ضبط کړي دي - ترڅو مره چه د دے خلقو او د باختریانو ترمینځه په ژوند ژواک کښې د مشابهت تعلق دے - د سکندر په وخت کښې هغه صرف د "اسپاسیانو" او "باختریانو" ترمینځ معلومیږي - لیکن چونکه دا خلق (اساکیني او کوري) هم د اسپاسیانو په شان د "کندهارا" په کوانړ کښې د قطب په لور میشته وو - نو د کندهاریانو سره به ئې ضرور تعلق روابط لرل - او په ژوند ژواک کښې به د کندهاریانو په شان او په دے لحاظ به ئې د باختریانو سره هم څه ناڅه مشابهت لرلو - البته د دوی د نومونو نه دا قیاس مرسته مومي چه د اسپاسیانو په نسبت به د دے خلقو تعلقات د باختریانو په مقابله کښې د هندیانو یعنې د ټیکسلا "اوراسا" او "ابهي سارا" وغیره ریاستونو د خلقو سره زیات وو - د دے قیاس مرسته د دے نه هم کیږي چه د سکندر په مقابله کښې د اساکینیانو امداد ته د هندي ریاستونو ("ابهي سارا" "اوراسا") نه څه فوځي دستے هم راغلي وے -

اوس که چرے دا قیاس قابل تسلیم وي - چه اسپاسي او کوري هغه خلق وو چه وروستو د شجره نویسو په الفاظو کښې د "یوسف زی" او "غوریه خیل" په الفاظو یاد شوي دي نو دا اساکیني څوک وو؟ - زما په قیاس کښې دا هغه خلق وو چه د دوی اخلاف د شجره نویسو په الفاظو کښې "اتمان خیل" سواتیان او ګدون یا جدون په نومونو ذکر شوي دي - د سکندر په زمانه کښې چه په کومه علاقه کښې "کوري" او "اساکیني" قبائل آباد وو - نن په هغه علاقه کښې د سکندر د زمانے "اسپاسي" او د نننۍ زمانے یوسف زی آباد دي -

به هرحال د سکندر په دے حمله کښې موږ ته سوا د یوڅو ښارونو او د یوڅو قبیلو

د نومونو نه د پښتنو په حقله څه داسې خبرې معلومې نۀ شوې چه د هغې نه د پښتنو د اصل نسل ، د دوی د ژبې ، لباس او تهذیب په باب کښې زمونږ په معلوماتو کښې څه زیاتے شوے وے۔ ولې د دې باوجود په دې خبره د یقین کولو بنیاد موجود دے چه دا غرنئیز قبائیل چه د سکندر دے فوځی سیلاب ته ځ ځانې په ځلځ بندونه اچولی وو۔ دا هم هغه خلق وو چه د سکندر د راتلو نه درې سوه کاله اګا هو مونږ هیرو ډوټس د هغوی د نومونو ، خویونو ، لباس ، وسلې او جنګی خصوصیاتو نه خبر کړی یو۔ او سکندر هم د دوی په زړورتیا او مړانه قائل شوے وو۔ او د سکندر نه پس هم چه هر حکمران په دوی بلوسه کړی ده۔ د هغه سره ئې ټکرے وهلې وے۔ او ترنن زمانې پورې د دے خلقو په افلاد فو کښې د شجاعت دا صفت موجود دے۔ او د دوی اخلاف د پښتنو د مختلفو قبائیلو په شکل کښې په دے علاقه کښې ترنن ورځې میشته دی۔

سکندر د دنیا یو لوئ فاتح او عظیم جرنیل وو۔ په ډیره لږه موده کښې ئې د دنیا ډیر ملکونه زیروزبر کړل۔ لیکن په دے فتوحاتو کښې د هغه زمانې حالاتو او واقعاتو هم د هغهٔ سره موافقت کړے وو۔ د غه زمانه کښې په ټول مشرق کښې سیاسی بحران وو۔ یو لور ته د هخا منشیانو سلطنت مخ په زوال وو۔ بل لور ته په مشرقی ایران ګندهارا ان چه په هند کښې هم داسې یو مقتدر حکومت نۀ وو۔ چه د سکندر د عظیم فوځی طاقت مقابله ئې کړے وے۔ په هره علاقه کښې مقامی سرداران حکمران وو۔ چه د یو بل سره ئې څه سیاسی روابط نۀ لرل او د یو بل سره به مخالف وو۔ سره د دے د سکندر په دے لس کلیزه فتوحاتو کښې هغه یوائې څلور کاله د پښتنو او افغانستان د نورو قبائیلو سره په جنګونو کښې بوخت وو۔ او باقی شپږ کاله ئې د آسیائې صغیر ، شام ، بابل ، مصر ، فارس ، او هند په جګړو او سفرونو کښې تیر کړل۔ د هغهٔ د دے فتوحاتو نه دا څرګنده ده چه د مشرق دا سیاسی بحران او عدم مرکزیت د هغهٔ د شهرت او نومیالئ یو لوئ باعث شو۔

د سکندر د دے حملے په وجه د هندیانو واسطه د دنیا د نورو مهذبو قامونو سره راغله۔ او په مشرقی ایشیا کښې د یونانیانو د حکومت په قیام سره د یورپ او هند تعلقات پیدا شول۔ هم د دے حملے په نتیجه کښې په دوئمه صدئ ق۔م کښې په باختر کښې یو " یونانی آرین " سلطنت قائم شو۔ او د ګندهارا دا فنونِ لطیفه د یونانیانو نه متاثر شول۔ دا تاثر د دے علاقے په سنګ تراشئ کښې څرګند دے۔ په بل لور یونانیانو هم د

بده مذهب د فلسفې اوخیالاتو اثر قبول کړو۔

سکندر د هند نه بابل ته لاړ ۔ او دا ئې اراده وه چه د خپل عظیم سلطنت د پاره دغه ښار خپل صدر مقام کړی ۔ ولې د پارس د بیانونو نه د تیریدو په وخت کښې د ملیریا په تبه اخته شوې وو ۔ او د دې مرض نه په ۱۳ جون ۳۲۳ ق ۔ م کښې د (۳۲) کالو په عمر کښې وفات شو ۔

د سکندر د وفات نه پس د هغهٔ د عظیم الشانه فتوحاتو عمر د هغهٔ د خپل عمر هومره هم اوږد نهٔ شو ۔ د اقتدار د حصول په لړکښې د هغهٔ د جرنیلانو ترمینځه خونړی جنګونه شروع شول ۔ په دې جرنیلانو کښې سلیوکس نوې یو جرنیل په شام او فارس کښې اقتدار حاصل کړو ، او ډیر زر ئې په باختر هم قبضه اوکړه ۔ او دغه شان د سکندر د سلطنت په مشرق حصه کښې د سلوسی خاندان بانی اوګرځید ۔

# موریا خاندان او پښتونخوا

د سکندر د وفات (سنه ۳۲۳ ق - م) نه لږه موده پس په هند کښې یو داسې واقعه اوشوه چه د سیاسي، مذهبي او تهذیبي نتائجو په لحاظ د پښتنو ټول وطن د هغې نه متأثر شو. دا واقعه د موریا خاندان د سلطنت ظهور وو. چه په حقیقت کښې د سکندر حملې د هغې د پاره زمکه تیاره کړې وه. د سکندر دے حملې د هند ټول تار په تار دا متفرق عناصر دے خبرے ته اماده کړل چه هغوی په خپلو سیاسیاتو غور اوکړی چنانچه هر یو راجا د خپلې آزادۍ حاصلولو د پاره د مناسب موقع او سامان په انتظار کښې وو. دا خبره د یوناني ارباب اقتدار نه هم پټه نه وه. چنانچه دوی پس په دے خبره اکتفا کوله چه د دغه راجګان د صرف په نوم د یونانیانو د حمایت لاندے وی.

**چندرګپت موریا:-** د موریا خاندان باني چندرګپت نومیده. چه د خپل یو برهمن دوست چانکیه په مدد ئې د نند خاندان نه د مګدهه (بهار) تخت حاصل کړو. او په سنه ۳۲۲ ق - م کښې تخت نشین شو. په سنه ۳۱۷ ق - م کښې چه د سکندر په مرګ ایله شپږ کاله تیر شوی وو. د پنجاب او ګندهارا علاقے لا د یونانیانو په قبضه کښې وے. اګرچه په دے خلقو کښې د خپلې آزادۍ جذبے او خواهش ډیر زور نیولے وو. په دغه کال (سنه ۳۱۷ ق - م) د ټیکسلا مقامي ګورنر امبهي چه د سکندر نه وړاندے او بیا د هغه نه وروستو هم د ټیکسلا مقامي ګورنر وو. په ډیرے بے دردۍ او وژلے شو. په دے واقعے د دے خلقو نفرت د یونانیانو نه نور هم زیات شو. په دغه ورځو کښې د سکندر د جرنیلانو د جنګونو په نتیجه کښې د ټیکسلا یوناني ګورنر د خپل فوځ یوه لویه حصه د ایران جنګ ته لیږلې وه. او په ټیکسلا کښې یوناني فوځ ډیر لږ وو. چنانچه د ټیکسلا خلقو د چندرګپت په اشاره بغاوت اوکړو او خپل ځان ئې د یونانیانو نه آزاد کړو. ولے د دوی دا آزادي ډیر زر د چندرګپت د لاسه ختمه شوه. او دا ریاست چندرګپت په خپل ریاست کښې شامل کړو. چونکه یوناني جرنیلان په خپل مینځ کښې په جنګونو اخته وو. نو چندرګپت ته د خپل سلطنت د مضبوطولو د پاره ښه موقع

په لاس ورغله۔

**سلیوکس نیکاتوراوچندراګپتا** :- په سنه ۳۱۳ ق۔م کښې د سکندر یو جرنیل سلیوکس په خپل حریف بریالے شو۔ او په بابل ئے قبضه اوکړه۔ او په سنه ۳۰۶ ق۔م کښې ئے د بادشاه لقب اختیار کړو۔ او د مغربي او وسطي ایشیا د بادشاهۍ او حکمرانۍ اعلان ئے اوکړو۔ او بیا په سنه ۳۰۵ ق۔م کښې د کابل په لاره د چندرګپت مقابلے ته روان شو۔

د چندرګپت او سلیوکس مقابله د اباسین په شرقي لورچرته یو ځائے اوشوه. په جنګ کښې سلیوکس ذلیل شکست اوموند او په صلح مجبور شو۔ د صلح په نتیجه کښې سلیوکس د خپل سلطنت نه د کابل، قندهار، هرات او بلوچستان علاقے چندرګپت ته ورکړے او خپله لور ئے هم چندرګپت ته واده کړه۔ د دے په بدل کښې چندرګپت پنځه سوه هاتیان سلیوکس ته ورکړل۔ د دے صلح په نتیجه کښې کندهار او د افغانستان یوه لویه حصه د هندی بادشاه چندرګپت مقبوضه شوه۔

د دے صلح یوه نتیجه دا هم اوختله چه د هندی او یونانی حکومتو نو ترمینځ سیاسی او تجارتي روابط ښه مضبوط شول۔ چنانچه سلیوکس خپل یو جرنیل چه میګاستنیز نومیده. د سفیر په ډول د چندرګپت دربار ته رااولیږلو. دا سفیر یو ښه عالم او لوئے مبصر وو۔ او د هند د قیام په دوران کښې ئے د هند د جغرافیې، د هغه وخت د خلقو د معاشرت او د چندرګپت د انتظام او فوځي قوت په باب کښې ډیر قیمتي معلومات په خپل یو کتاب کښې لیکلي وو۔ ولے د بده مرغه د دهٔ دا کتاب (انډیکا) اوس ورک دے۔ البته د دے ځنے ځنے حصے د یونانی د کلاسیکي مورخینو په کتابونو کښې موندلے شي۔ د میګا ستهنیز د بیان مطابق چندرګپت د یو ډیر لوئے فوځي طاقت خاوند وو۔ او د دے فوځي طاقت په وجه هغهٔ د هند اکثره زمکه او د افغانستان یوه لویه حصه په خپل سلطنت کښې شامله کړی وه۔

چندرګپت د سنه ۲۹۷ ق۔م په خوا و شا کښې وفات شو۔ او د هغهٔ ځوئے " بند وسارا " د هغهٔ جانشین شو۔ " بند وسارا " یو امن پسند بادشاه وو۔ او د پلار په شان ئے د یونانی بادشاهانو سره سیاسی روابط قائم ساتلي وو۔ بند و سارا شاید چه په سنه ۲۷۳ ق۔م کښې مړ شو۔ او د هغهٔ په ځائے د هغهٔ ځوئے " اشوکا " تخت نشین شو۔

اشوکا د خپلے کورنۍ او د هندوستان په لویو لویو بادشاهانو کښې حسابیږی. د دهٔ د تخت نشینۍ په دیارلسم کال یوه داسے واقعه اوشوه چه د دهٔ شخصیت ئے هم د سیاست له مخه او هم د عقیدے له مخه ډیر متاثر کړو. دا د " کالنګا " د جنګ واقعه وه۔ دا جنګ په

سنه ۲۶۱ ق ـ م کښې شوے وو۔ د دے جنګ اثر په اشوک داسے اوشو چه د هغهٔ ژوند ئے بیخی بدل کړو۔ د جنګ نقصاناتو اوکړاونو په هغهٔ دومره اثر اوکړو چه د هغهٔ زړهٔ اودړدید لو۔ او د خپلے ملک ګیرئ په دے هوس ئے خپل ځان ډیر نادمه اولازمه اوګڼلو۔

د "کالنګا" د جنګ په نتیجه کښې اشوک بدھ مذهب قبول کړو۔ او د دے مذهب تبلیغ او اشاعت ته ئے ډیر په اخلاص ملا اوتړله۔ د اشوک د دے مذهبی سرګرمئ په نتیجه کښې بدھ مذهب د پښتنو علاقے ته هم راورسید۔ (دا نوے مذهب د مشهور بدھ مبلغ "مادهینتیکا" (چه د اشوک له خوا ګندهارا اوکشمیر ته رالیږلے شوے وو۔) په کوششونو په اول وار د پښتنو په علاقه کښې اوپیژندلے شو۔ احتمال لري چه په ګندهارا کښې به د بدھ مذهب آغاز د ضلع مردان د (لاهور) نومے کلی نه شوے وی۔ د ننئ زمانے دا ورکوټے کلے په قدیمه زمانه کښې د علم لوئے مرکز وو۔ د سنسکرت ژبے مشهور فاضل او قواعد دان "پانینی" چه د (سنه ۳۵۰ ق ـ م) په خوا وشا کښې زیږیدلے وو۔ هم د دے کلی (لاهور) استوګن وو۔ هم په دے کلی کښې د اشوک په حکم په سنه ۲۵۶ ق ـ م کښې د بدھ مذهب یوه لویه عبادت خانه هم جوړه شوی وه۔ چه چینی زائر هیون سانګ ئے هم ذکر کړے دے۔

اشوک خپل ټول فرامین او مذهبی احکام په خپل ټول سلطنت کښې ځائے په ځائے د کتباتو په شکل کښې پریښی دی۔ او د دهٔ د زمانے دا کتباب د دهٔ په خور وور سلطنت کښې ځائے په ځائے موندلے شی۔ په دے کتباتو کښې یوه کتبه په شهباز ګړهه (ضلع مردان) او بله په مانسهره (ضلع هزاره) کښې تر اوسه موجود دی۔ دا کتبے په "پالی" ژبه او خروشتی رسم الخط کښې لیکلی شوی دی۔ چه په هغه زمانه کښې د ګندهارا او د افغانستان د یوے لوئے خطے ملکی رسم الخط وو۔ (د دے رسم الخط ذکر به وړاندے په تفصیل سره اوشی۔)

د لاهور (ضلع مردان) په شان شهباز ګړهه (ضلع مردان) هم په قدیمه زمانه کښې د بدھ مذهب یو اهم او مشهور مقام وو۔ د مذهبی اهمیت نه علاوه دا بنار په هغه لویه تجارتی شاهراه واقع وو۔ کومه چه د وسط ایشیا نه هند ته تلی وه۔ چینی سیاح هیون سانګ هم د خپل سیاحت په دوران کښې دلے راغلے او د دے ځلے د سرسبزئ او آبادئ ستائینه ئے کړی ده۔ یو بل چینی زائر سنګ یې هم د دے مقام د سرسبزئ او د دے ځای د خلقو د خوش اخلاقی صفتونه کړی دی۔ د شهباز ګړهے دا کتبه په هغه قدیمه شاهراه تر اوسه پورے موجود ده۔
د دے کتباتو په ذریعه د اشوک له خوا د خپلو فرامینو او مذهبی احکاماتو په خلقو کښې خورول د دے قیاس مرسته کوی چه د ګندهارا خلق به د داوسنئ زمانے په نسبت

په هغه زمانه کښې زیات تعلیم یافته وو. بدهٔ مذهب اګرچه په هند کښې پیدا شوے وو لیکن د دے مذهب سره د اشوک د شغف او سرګرمۍ په نتیجه کښې دا په هغه ټوله خطه کښې په ډیرے تندۍ سره خور شو، چه په یو زمانه کښې په مشرقي ایران مشهوره وه. د ټیکسلا د بدهٔ د زمانے لیکونه د ګندهارا داکثرو مقاماتو، لمغان او بامیان بوتان بلکه د بخارا پورے د بدهٔ مذهب یادګارونه د دے خبرے څرګند ثبوت دے.

اګرچه د اشوکا په حکومت کښې د پښتنو د وطن یوه لویه خطه شامله وه. لیکن د اشوک په دے کتباتو او لیکونو کښې یا د دے زمانے په کنډوالو کښې موږ ته د پښتون قام، د دوئ د ژبے او د دوئ د تهذیب په حقله څه خاص معلومات په لاس نۀ راځي. سوا د دے نه چه د دے زمانے بتان د دے قیاس مرسته کوی. چه بدهٔ مذهب په دے علاقه کښې په خلقو کښې مقبول شوے وو.

دا یو حقیقت دے چه کم و زیات یو صدۍ دا خلق (پښتانۀ) د موریا خاندان د حکومت ماتحت وو. او سره د دے چه د دے خاندان حکمرانی په غرنیزو علاقو ډیره کمزوری او د نیشت برابر وه. ولے بیا به هم د میدانی علاقو خلق یقینًا د دوی د تهذیب او تمدن نه متاثره وو. خصوصًا په مذهبي معاملاتو کښې. پښتانۀ په مذهبي معامله کښې ډیر حساس دی. او د خپل مذهب سره انتهائی مینه لری. دا خبره د دوی په باب کښې نن ورځ هم ریښتیا ده. او د غه حال په دے علاقه کښې د بدهٔ مذهب د عروج په زمانه کښې هم وو. لکه چه د ګندهارا په علاقه کښې په کثرت سرۀ د بدهٔ مذهب د آثارو او بے شمیره بتانو نه څرګندیږی ده.

اشوک په کال (سنه ۲۳۲ ق.م) کښې وفات شو. د دریمے صدۍ ق.م په آخری کالونو کښې د "ګندهارا او وادۍ کابل" حکمران "سوبهاګاسینا" یا "سوفاګازش" نومیدهٔ. یونانیانو دا بادشاه د "هندیانو بادشاه" یاد کړے دے. ولے د موریا خاندان د آخری بادشاهانو په نومونو کښې په دے نامه څوک نشته. ممکنه ده چه په دغه زمانه کښې به د ګندهارا او وادۍ کابل علاقه د موریا خاندان د قبضے نه وتلی وی. او دا حکمران به د یو بل خاندان او د دے خطے یو خپلواکے حکمران وی. به هرحال دا حکمران د باختر د یونانی باچا "ایوتیدوس" د لاسه معزول شو. (او ګندهارا او وادۍ کابل د باختر د یونانی سلطنت مقبوضه شوه. په هند کښې د موریا خاندان آخری باچا (برهدرت) د خپل سپه سالار پشتیه مترسنګ د لاسه په (سنه ۱۸۵ ق.م) کښې او وژلے شو.

# باختري يونانيان

لکه چه وړاندے وویلی شوی دی د سلیوکس او چندر ګپت د جنګ په نتیجه کښې د افغانستان څه علاقے د موریا خاندان په قبضه کښې راغلی وے. ولے د باختر او مشرقی ایران نورے حصے د شام په یونانی سلطنت کښې شاملے وے. چه سلیوکس ئے بانی وو. سلیوکس په کال سنه ۲۸۰ ق-م کښې وفات شو. او د هغهٔ په ځائے د هغه ځوئے انتوکیوش اول حکمران شو. د دهٔ د حکومت په زمانه کښې د باختر په ګورنرئ د یو ډیوډوټس نومے یو یونانی مقرر وو. دا سړے یو ډیر هوښیار او مدبر او د خپل استقلال ډیر آرزومند وو. د انتوکیوش اول نه پس د هغهٔ ورور انتوکیوش دویم حکمران شو. لیکن د باختر په ګورنرئ هم دغه ډیوډوټس مقرر وو. لیکن په کال سنه ۲۵۰ ق-م کښې ډیوډوټس د خپل استقلال اعلان اوکړو. او د باختر نه علاوه د سغدیانے صوبه ئے هم په خپل سلطنت کښې شامله کړه. د دے نه پس په باختر کښې د یونانیانو یو نوے حکومت قائم شو. چه کم و بیش دوه سوه کاله د افغانستان په یو لویه حصه مشتمل وو. هم په دغه وړځو (سنه ۲۴۹ ق-م) کښې د "پارتیا" په صوبه کښې هم بغاوت اوشو. د دے بغاوت مشر "ارساس". نومے یو پارتی سردار وو. دا بغاوت هم کامیاب شو. او د پارتیا صوبه هم د شام د سلوسی حکومت نه آزاده شوه.

د ډیوډوټس اول نه پس د هغهٔ ځوئے د باختر باچا شو. (سنه ۲۳۰ ق-م) دا سړے د ډیوډوټس په نامه معروف دے. دهٔ هم د خپل سلطنت د حفاظت په لړ خپل کوششونه جاری اوساتل. او خپل سلطنت ئے ښهٔ مضبوط کړو. د دهٔ د سلطنت یو اهمه خبره داده چه دهٔ په وخت کښې د "باختر" او "پارتیا" په مینځ کښې د دوستئ او جنګ نهٔ کولو معاهدهٔ اوشوه. دا معاهده د دواړو حکومتونو د پاره ډیره مفیده وه. خصوصاً د "پارتیا" د پاره ځکه چه په دغه وړځو کښې د "پارتیا" حکمران "تری داټس" (چه د ارساس ورور وو) د شام د یونانی باچا انتوکیوش سره په جنګونو کښې بوخت وو.

ډیوډوټس په خپل سلطنت کښې د هرات خطه هم شامله کړه. او دغه شان ئے خپل

سلطنت ته توسیع ورکړه ـ لیکن د شام یونانی سلطنت د باختر آزاد او مضبوط سلطنت د خپلې بقا د پاره خطرناک ګڼلو ـ او د دے دختمولو د پاره ئے د هیڅ ذریعے نه مخ نهٔ اړولو.
چنانچه د باختری حکومت برخلاف ئے د « سغد یانه » ګورنر چه ایو تیدم نومیدهٔ اوپاړولو دا سرے د ډیو ډوټس د لوری نه د سغدیانے ګورنر وو ـ ایو تیدم د باختر خلاف بغاوت اوکړو او په باخترئے حمله اوکړه ـ په جنګ کښے ډیو ډوټس اووژلے شو ـ او « ایو تیدم » په باختر قبضه اوکړه ـ لیکن په دے هم د شامی حکومت مقصد ترسره نهٔ شو ـ ځکه چه ایو تیدم د خپل استقلال اعلان اوکړو ـ او د دهٔ په با دشا هئ په باختر کښے د یو نانیانو د دویمے کورنئ حکومت شروع شو ـ په دغه وخت کښے په شام کښے انتوکیوش دویم حکمران وو ـ

انتوکیوش دویم په « پارتیا » حمله اوکړه ـ او د « ایو تیدم » نه ئے هم په خپله مرسته کښے د پارتیا برخلاف د خپلے خواست اوکړو ـ لیکن باختری باچا د شامی سلطنت په مرسته کښے د پارتیا سره جنګ ته غاړه کښے نښوه ـ د ۲۱۲ ق ـ م نه د ۲۰۸ ق ـ م پورے د شام د یونانی سلطنت او پارتیا تر میڅه جنګونه جاری وو ـ په دے جنګونو کښے د پارتیا سلطنت ډیر اوزپلے شو ـ او ډیره علاقه ئے د لاس نه اووتله ـ

د دے نه پس انتوکیوش په باختر حمله اوکړه ـ او بلخ ئے محاصره کړو ـ دا محاصره دوه کاله اوږده شوه په دے دوران کښے حمله آور او مدافعین دواړه تنګ شول ـ ولے محصورینو څه داسے کمزوری ظاهره نهٔ کړه چه حمله آورته پرے څه فائده رسیدلے وے ـ آخر د صلح خبرے اترے شروع شوے ـ او کامیابے شوے ـ انتوکیوش شامی بادشاه د باختر استقلال اومنلو. او خپله لورئے د « ایوتیدم » ځوئ ډیمترس ته وادهٔ کړه ـ په دے دستور د شامی او باختری یونانیانو تعلقات او دوستی مضبوطه شوه ـ

انتوکیوش د کوهِ هندوکش په جنوب د قندهار په لار خپل وطن ته روان شو ـ په دے موقع « ایوتیدم » د خپل فوځ یوه لویه حصه د دهٔ د عزت افزائ په غرض د هغهٔ په جلب کښے د هغهٔ سره واستوله ـ دغه فوځونه چه د کابل په منطقه کښے داخل شول نو د وادئ کابل آخری حکمران « سوبهاګاسینا » یا « سوفاګازانس » ئے مغلوب کړو ـ او دغه شان وادئ کابل او ګندهارا په اول وار د باختر د یونانی حکومت په قبضه کښے راغله ـ ایوتیدم کم و زیات څلویښت کاله حکومت اوکړو ـ او د ۱۹۰ ق ـ م په خوا و شا کښے مړ شو ـ

د دهٔ په مرګ دیمترس د باختر باچا شو. نوموړے د باختر په یونانی بادشاهانو کښې د لوئے نوم او شهرت خاوند دے. د تخت نشینئ نه پس ئے سمدستی د افغانستان اکثره حصه فتح کړه. او بیا ئے په خپل ځائے خپل ځوئے "ایوتیدم دوم" په باختر کښې خپل نائب مقرر کړو. او په خپله د خپل مشهور جرنیل "میناندر" سره د هند د فتح په تکل روان شو. او د سنه ۱۵۸ ق.م په خوا وشا کښې ئے د مغربي پنجاب لویه برخه فتحه کړه. او د خپل سلطنت صدر مقام ئے د ټیکسلا ښار مقرر کړو. په حربي نقطه نګاه سره د دے ښار لوئے اهمیت لرلو. د موریا خاندان په وخت کښې هم دا یو لوئے فوځئ مرکز وو. دلته کښې د دیمترس یو لوئے ښار اباد کړو. چه اوس د هغے تعین د "بهیر او سری کپ" سره کیږی.

دیمترس په ټیکسلا کښې وو چه په باختر کښې د دهغه ځوئے مړ شو. په دغه ورځو کښې د شام د یونانی حکومت په لمسون یو ټل بیا په باختر کښې بغاوت اوشو. دا بغاوت د یو یونانی جرنیل "ایوکراتیدس" په سرکردګئ کښې شوے وو. دیمترس چه د واقعاتو نه خبر شو نو په تادئ سره د ټیکسلا نه باختر ته لاړ او د ایوکراتیدس سره په جنګونو کښې بوخت شو. او هم په دے جنګونو کښې مړ شو. د دهٔ په مرګ د دے دویم ټبرخاتمه اوشوه. په کال سنه ۱۷۵ ق.م کښې ایوکراتیدس د خپلے بادشاهئ اعلان اوکړو. او د دهٔ په تخت نشینئ سره په باختر کښې د یونانیانو دوئم ټبر حکمران شو

اګرچه ایوکراتیدس د سنه ۱۷۵ ق.م په خوا وشا کښې په باختر کښې بادشاه شوے وو. لیکن د مغربي پنجاب، کندهارا او افغانستان اکثرے حصے لا د "دیمترس" د خاندان په قبضه کښې وے. او د سنه ۱۴۷ ق.م پورے د "ایوکراتیدس" حکومت صرف په باختر او سغدیانه مشتمل وو. ولے دیمترس نه پس د باختری یونانیانو ترمینځه د خونړی جنګونو یوه سلسله شروع شوه. او د دے په نتیجه کښې د دوئ سلطنت ته لوئے نقصان اورسید.

په دغه زمانه کښې په کندهارا او د دیمترس په نورو هندی مقبوضاتو د دهغهٔ یو جرنیل میناندر حکمران وو. وروستو دغه سړی د بیاس سیند نه په مشرق هم څه علاقه فتح کړه. او د بادشاه لقب ئے اختیار کړو. ساکالا (سیالکوټ) یا توتیدیمیا (EUTHYDEMIA[1]) ئے خپل صدر مقام مقرر کړو. شاید چه د دهٔ په حکومت کښې د باجوړ علاقه هم شامله وه. په دے علاقه کښې یوه کتبه موندلی شوی ده چه د هغے تاریخ د میناندر د سلطنت پنځم

[1] یا یوتیدیمیا (EUTHYDEMIA) تعین د شیرکوټ (ضلع جهنګ) سره شوے دے.

کال دے۔ د یونانیانو دے کورنو جنګونو په نتیجه کښے ګندهارا او د مغربی پنجاب علاقے د باختر د سلطنت نه وشلیدے۔ د باختر په هغه یونانی بادشاهانو کښے چه په هند (ګندهارا) کښے حکمرانی کړې ده۔ په هغې ټولو کښے میناندر زیات شهرت لری۔ وئیلے شی چه دهٔ بدهه مذهب هم قبول کړے وو۔

په کومو ورځو کښے چه باختری یونانیان د هندوکش په جنوبی حصو کښے په خپل مینځ کښے په خونړی جنګونو کښے ګیا وو۔ په دغه ورځو کښے په باختر باندے د قطب د لوری نه د ساکا" قبائیلو حملے شروع شوے۔ دے حملو د سلطنت په وقار او استحکام کښے ډیر کمے پیدا کړو۔ په دغه ورځو کښے د پارتیا بادشاه میتهرا ډیټس (مهرداد) د موقع نه فائده واخسته او په باختر ئے حمله اوکړه۔ او څه موده وړاندے چه باختری یونانیانو د پارتیانو نه کومے علاقے فتح کړے وے۔ هغه ئے بیا واخستلے۔ په دے جنګونو کښے د باختر یونانی بادشاه "ایوکراتیډس" اووژلے شو۔

د فتح نه پس پارتی بادشاه (مهرداد) په باختر کښے اتال نهٔ شو۔ دلته ئے خپل یوناښ پرے ښودو، او په خپله د سیستان، اراکوسیا او جدروسیا د فتح کولو په غرض روان شو۔ د "ایوکراتیډس" ځوئے "هلیوکلوس" چه میدان خالی اولید نو په باختر ئے دوباره حمله اوکړه۔ او څه موده دلے حکمران پاتے شو۔ لیکن په باختر باندے د سکایانو زغاښتونو د باختر حکومت ډیر اوزپلو۔ او آخر "هلیوکلوس" د باختر په پرے ښودو مجبوره شو۔ او د ۱۳۵ ق۔م په خواوشا کښے د باختری یونانیانو حکومت د هندوکش جنوب ته د کاپیسا منطقے ته منتقل شو۔ او هلیوکلوس څه موده دلے حکمران وو۔ په باختر او سغدیانه د ساکا قبائیلو قبضه شوه۔ د هرات علاقه پارتیانو د خپل سلطنت سره اوګنډله۔ په دے ورځو کښے د ګندهارا علاقه د میناندر په قبضه کښے وه۔ ولے د میناندر د مرګ نه پس ګندهارا هم د هلیوکلوس په سلطنت کښے شامله شوه۔

د "هلیوکلوس" د مرګ نه پس یونانی سلطنت نور هم کمزورے شو۔ مرکزی طاقت ئے ختم شوے وو۔ ټول سلطنت په وړو وړو ریاستونو کښے تقسیم وو۔ ځنے یونانیانو خپل حکومت په پنجاب کښے قائم کړے وو۔ ځنے په ګندهارا قابضان وو۔ "پشکالاوتی" (راوسنئ چارسده) د دوئ صدر مقام وو۔ ځنے یونانیانو په کاپیسا حکومت کولو۔

د "هلیوکلوس" نه پس د ګندهارا په یونانی بادشاهانو کښے قابل ذکر "انتیال کیډس" وو۔ چه صدر مقام ئے ټیکسلا وو۔ په دے ډول د کاپیسا په باختری حکمرانانو کښے آخری حکمران "هرمایوس" نومیدهٔ چه په ۵۸ ق۔م کښے د ساکا قبائیلو د یو باچا آزس اول

دلاسه ختم شو. د باختري يونانيانو حکومت د افغانستان په اکثرو علاقو تقريباً دوه سوه کاله (د ۲۵۰ ق.م نه ۵۰ ق.م پورې) او په ګندهارا باندې قريباً شل شپږ شله کاله قائم وو.

د باختري يونانيانو په دې اوږد تسلط کښې موږ ته د پښتون قام او پښتو ژبې په حقله هيڅ رڼائي نه ښکاري. او کومه رڼا چه موږ د دې زمانې نه څلور سوه کاله اول د هيرو ډوټس په ليکونو کښې ليدلې وه. هغه موبيا او نه ليدله. نه مو د پښتنو نوم واوريد او نه مو د دوی د څينې قبيلو هغه نامې بيا واوريدې، نه د دوی د ځاي، وسلې او د ژوند د لاروچارو نه خبر شو. البته په دې خبره د يقين کولو وجوهات موجود دی چه په دغه زمانه کښې د ملک په مختلفو حصو کښې باختري ژبې ويلې شوې. او هرکله چه پښتانه په دې علاقه کښې د دې زمانې نه سوونه کاله وړاندې استوګن وو. نو يقيناً دوی به خپله ژبه ويله. او دا عين قرين قياس ده چه د ګندهارا او ملحقه علاقو د پښتنو په تهذيب و تمدن کښې به د باختري يونانيانو اثرات په دغه زمانه کښې نور هم زيات شوي وي.

د باختري يونانيانو په عهد کښې د ملکي خلقو د مذهبي عقائدو د رسم الخط او اجتماعي ژوند په حقله هم په واضح ډول څه اشارې نه شي موندلې. او د دې خبرو په حقله چه څه لږ ډير معلومات حاصل شوي دي. هغه اکثر په قياس او د دې زمانې د بادشاهانو د مسکوکاتو په شهادت مبني دي. د دوی دا مسکوکات دا سې شاندار او ښکلي دي چه د دوی فخر پرې بې ځايه نه دې.

وړاندې ويلې شوي دي چه زردشتي مذهب د هخامنشي حکومت سرکاري مذهب وو. او دا خبره بې بنيا ده نه ده. چه د سکندر د حملو په وخت کښې د افغانستان او ګندهارا د اکثر خلقو دين او آئين زردشتي وو. دا هم درست ده چه څه رنګ په فلسطين باندې د بخت نصر د حملې په وجه کوم سلوک د «تورات» سره شوې وو. هغه سلوک په ايران باندې د سکندر د حملې په وجه د «اوستا» سره اوشو. يعنې په دوارو ملکونو کښې اصلي کتابونه بيخي ورک شول. ليکن سره د دې چه د سکندر په حملاتو کښې زردشتي مذهب ته لويه صدمه رسيدلې ده. ليکن د دې حملو په وجه دا مذهب بيخي نه وو ورک شوې. په وروستي زمانه کښې په زردشتي کښې ضعف، کمزوري او تحريف او تبدل هم يواځې د سکندر د حملو نتيجه نه شي کيدې. بلکه د دې عوامل هغه نوي افکار و خيالات هم وو کوم چه د مغرب لخوا د يونانيانو سره او د مشرق لخوا د «اشوکا» د مبلغينو د تبليغي کوششونو په وجه په دې

علاقوکښې خوارۀ شوی وو - په دے وجه د باختری یونانیانو په دوه سوه کلیزه دوره کښې دګندهارا او افغانستان د اولس عقائد او مذهبی افکار په درے ډوله وو - او دوی به درے قسمه ارباب الانواع محترم ګڼل او د دوی پرستش به ئے کولو - یعنی د یونانی ، بودائی او زر دشتی (مقامی) -

تکه چه د مخه مواوویل د سکندر فتوحاتو د مشرق لاره د مغرب د افکارو او خیالاتو د پاره پرانستله - د سکندر سره په خپلو فوځونو کښې صنعتګران ، مؤرخین ، ادیبان ، عالمان ، او د موسیقۍ ماهران او نور نور فنکاران موجود وو - د دوی په وجه د دے نوی افکارو آغاز اوشو - او دهغه یونانیانو په وجه چه وروستو په دے ملک کښې پاتے شول - دغه خیالات خوارۀ شول - او جرړے ئے عواموته اورسیدلے -

هم په دے ډول دهغه یونانیان چه سکندر دخپلو فتوحاتو په دوران کښې د ملک په مختلفو مرکزونو کښې په فوځي چاونو کښې آباد کړی وو - د باختری یونانیانو د مستقل حکومت په قیام سره دهغوی روابط ترډیره حده د یونان نه قطع شول - او د دے ملک استوګن او ګرځیدل - او په دے دوه سوه کلیزه دوره کښې د ملکی خلقو سره په اولسی او مجلسی تعلقاتو کښې اوګنډلے شول - او د دے نتیجه دا شوه چه یونانی افکار او معتقدات د دے ملک په عوامو کښې په څه نه څه شکل کښې خوارۀ شول - هم د دغه شان د یونان میتو لوژی افسانے او د دوی د ارباب انواعو نامے او قصے په عواموکښې خورے شوے - د باختر یونانی بادشاهانو دخپلو شاندارو مسکوکاتو په ذریعه دخپل خپل خاندان د مرستیالو ارباب الانواعو نومونه او شکلونه په داسے ډول په اولس کښې خوارۀ کړی وو چه هرڅوک د دے نومونو او شکلونو سره بلد شوی وو -

یونانی صنعتکارانو او هغه یونانیانو چه د دے ملک اولس ګرزیدلے وو - او د دے ملک خپلو مقامی فنکارانو د باهمی تأثرپذیرۍ په نتیجه کښې د بت تراشۍ ، نقاشۍ او د نورو نفیسه صنائعو په ذریعه د دے نوی خیالاتو او افکارو په خورولو کښې هم لویه برخه لرله - دغه تاثرات وروستو دګندهارا د سنګ تراشۍ په صنعت کښې څرګند شول - او اګرچه کوشانیانو په خپل وخت کښې په دے لړکښې د ستائینے ورخدمتونه کړی دی - ولے دا وئیل یقیناً بے ځایه نۀ دی چه د کوشانی خاندان په عهدکښې چه دګندهارا فنون لطیفه کوم عروج حاصل کړے وو دهغ بنیاد د باختری یونانیانو په دے عهدکښې ایښودلے شوے وو -

هم په دے ډول په دغه زمانه کښې د مشرق لخوا دهند نه بیخی یو نوے دین د مخصوص

طرز معیشت، اخلاقي ضابطې او مخصوصې فلسفې سره په دې ملک کښې خورشو. د دې نوي دين نه مراد بوداي دين او د دې دين فلسفه ده. چه داشوکا د مبلغينو په ذريعه وړه دا ملک اشنا شوې وو.

بوداي آئين د دريم صدۍ په مينځوما نه کښې يعنې په هغه زمانه کښې چه په باختر کښې يونانيانو د خپل استقلال تيارې کوله. دا باسينه نه را پورې وتو. او په کشمير پاراشا پورا (پيښور)، پشکالاوتي (چارسده)، نګارا هارا (ننګرهار)، لمپاکا (لمغان) کابل او کاپيسا تر علاقې چه په دغه زمانه کښې دا تولې زمکه د موريا خاندان په سلطنت کښې شامله وه، په آسانه خورشو. او بيا زر زر د هندوکش شمالي علاقو ته هم ورسيدو اګرچه د باختر يوناني بادشاهانو نه خوښېده دا دين رسمًا منلې وو. او نۀ ئې د دې په خورولو کښې څه کوشش کړې وو. ولې سره د دې د هندوکش په شمال او جنوب کښې يوه ډيره لويه علاقه کښې د دې مذهب منونکې اولس موجود وو. او دا اولس په روحياتو کښې د غربي افکارو په نسبت د دې مذهب چرې تر لرې رسيدلې وې.

لکه چه وړاندې مو وئيلي دي. دا خبره درست ده چه په ايران او افغانستان کښې د سکندر شپږ کلېزه جنګونو اوستا کتاب او د زرتشت آئين ته لويه صدمه رسولې وه. په دې حملو کښې د اوستا کتاب بيخي ورک شوې وو. د دې مذهب عبادت خانې وړانې او د مزکې سره هوارې شوې وې. د دې مذهب عالمان او موبدان تار په تار او در په دېکه شوي وو. ولې سره د دې دومره لويو صدماتو دا مذهب بيخي نۀ وو ورک شوې. او د دې منونکي ځائې په ځائې موجود وو. اګر دا هم حقيقت دې چه د سکندر د حملو نه پس بوداي آئين ديو مضبوط او لوئې حريف په شکل کښې د دې مذهب مخه اووهله. او په مشرقي علاقو کښې ئې د ټيکسلا نه تر کاپيسا پورې بيخي د مينځه اوويستلو او د باختر په سلو کښې ورته هم ګوابنيدو. حتیٰ چه د دريمې صدۍ ق-م په آغاز کښې د باختر علاقې هم د بوداي آئين په دائره کښې شاملې شوې. او زردشتي مذهب د دې علاقو نه هم د مغرب او جنوب مغرب علاقو ته يعنې د هري رود، فراه او هيرمند ګټو ته اوخوزيدلو. او دا سلام تر ظهوره هم په دغه علاقو کښې ژوندې وو.

غرض د باختري يوناني سلطنت په دوره کښې يعنې د قبل از ميلاد په وړومبنيو دوؤ صديو کښې د اوستاي دين بقايا لا پاتې وې. او دغه اوستاي ارباب الانواع لکه د "اناهيتا" (د اوبو او پيداوار ديوي) او "ميترا" (د نمر رب النوع) پرستش

به کید لو. خصوصاً د «اناهیتا»، پیر وان ډیر وو. ولې بودائي فلسفه او «یوناني میتولوژي»، چه د محلي او مقامي عقائدو او مذهبي افکارو سره خلط ملط شوې نو دغو عواملو د اولس په عقائدو کښې یو نوې جنبش پیدا کړو. دغو پر دو خیالاتو او افکارو دې ګډون او اختلاط اجتماعي ژوندون او محلي تهذیب ته یو نوې شکل ورکړو چه د باختري یوناني تهذیب په نامه یادیږي.

**ژبه او رسم الخط:**- لکه چه د مخه اوویلې شول. په دې زمانه کښې په دې ټوله خطه کښې د باختر مختلف لهجې ویلې کیدلې او د پښتو ژبه هم په دغه ژبو کښې یوه ژبه وه. د باختري یونانیانو د مسکوکاتو نه دا خبره څرګندهٔ ده چه دې بادشاهانو د یوناني ژبو سره علاقائي ژبې هم محترمې ګڼلې. او په درنه سترګه به ئې ورته کتل. د اکثرو احتمالاتو په بنا په ابتدا کښې درباري ژبه یوناني وه. ولې د دې بادشاهانو د دویم تېر دَ آغاز سره یوې علاقائي ژبې هم په دربار کښې رسائي حاصله کړه. یوناني ژبه اګرچه ترڅهٔ حده په باختر کښې خو معروفه وه ولې د هندوکش په جنوبي علاقو کښې دا بیخي یوه نوې ژبه وه. او خلق پرِ هرګز نهٔ پوهیدل. په دې بنا محلي ژبې یا کم از کم یوه محلي ژبه دا سې هم وه چه هغه رسمي او درباري ګڼلې شوې وه. دا خبره د مسکوکاتو نه څرګنده وه ولې دا کومه ژبه وه؟ دا ویل ګران دي. یعنې کوم وخت چه یوناني حکومت د هندوکش په جنوبي لمنو کښې خورشو. د هغه وخت نه په مسکوکاتو باندې د یوناني ژبې سره یو علاقائي ژبه (پراکرت) په خروشتي رسم الخط کښې لیکل هم شروع شول. او دیمتریس اول بادشاه وو. چه خپل مسکوکات ئې په دوو ژبو (یوناني او علاقائي) او په دوؤ رسم الخطونو (یوناني او خروشتي) کښې ضرب کړې دي.

د دې نه علاوه د یونانیانو او اولسي خلقو د ګډون له کبله یوناني او علاقائي ژبې هم د یو بل نه متاثره شوې او څه مخلوطه لهجه ترنه جوړه شوه. او د زمانې په تیریدو سره چه څه رنګ د یونانیانو وینه د اوږدې استوګنې او اولسي تعلقاتو په بنا د ملکي خلقو سره ګډه وده او میخ نه اووتله. دغه شان یوناني لهجه هم په باختري لهجو کښې ګډه وده او ورکه شوه.

د باختري یونانیانو په دې دوه سوه کلیزه دوره کښې چه په مسکوکاتو باندې په کوم مطالب په یوناني ژبه او یوناني رسم الخط کښې هم لیکلې شول، هغه مطالب په یوه اولسي ژبه په خروشتي رسم الخط هم لیکلې شول. د دې نهږدا معلو مېږي

چه په دغه وخت کښې د یونانی ژبې او یونانی رسم الخط سره خروشتی رسم الخط او یوه علاقائی ژبه هم اړخ په اړخ مروجه وه. او د دفترمنشیان او د دربار اهلکار به په دواړو ژبو پوهیدل. او داسې لیکوال او « ژباړن » به موجود وو. چه د دواړو ژبو او دواړو رسم الخطونو نه به خبردار وو. دغه رواج هم دغه شان جاری وو. تر دې چه په کوشانی دوره کښې د یونانی رسم الخط ممیزات ډیر تت شول او د خلقو د فهم نه اووتل. او د هغې ځائې خروشتی رسم الخط اونیولو. دې کښې شک نشته چه کوشانی بادشاهانو هم په خپلو مسکوکاتو کښې یونانی رسم الخط استعمال کړے دے. ولې دا صرف تقلید دے. او د دوی دا دور د خروشتی رسم الخط د ترقئ دور ګڼلے شی.

اګرچه د دے خبرے په حقله خوځه واضح ثبوت نشته، ولے دا وئیل به بے ځایه نۀ وی چه د باختری یونانیانو په دے دوره کښې یونانی عنصر په پښتنو ترځه حده اثر انداز شوے دے او څنې پوهان د دے عنصر «نخښو نښانو تلاش د پښتنو په روایاتو، دودونو، دستورونو او شکلونو کښې کوی.

# ساکا او پارتین

د هخامنشي عهد حکومت نه پس د باختري یونانیانو د دورې ترختمیده مونږ بیا د پښتون قام او د دوی د ژبې په حقله په واضح ډول څه او نه لیدل. البته د تاریخ په دې دور کښې چه مونږ ته اوس ذکرکوو د پښتون قام او د دوی د ژبې په باب کښې یوه تته شان رڼا ښکاریږي - دا رڼا مونږ د ساکا پارتین باچایانو په نومونو کښې لیدلې شو.

څه رنګ چه د پښتنو ژبې په حقله مونږ په دې تیرو پاڼو کښې د ځینې ژبپوهانو دا خیال ظاهرکړې وو چه موجوده پښتو ژبه د ژند یا د ژند په شان د یوبلې ژبې نه راوتلې ده. دغه رنګ د اوسني زمانې ځنې ژبپوهان دې عقیدې ته مائل دي چه داموجوده پښتو ژبه د "ساکا پارتین" د ژبو نه راوتلې ده - ولې اول د دې نه چه مونږ د "ساکا پارتین" ژبو کښې د موجوده پښتو ژبې سراغ اولټوو - دا به بهتره وي چه د ساکا پارتین قبائیلو په حقله څه وضاحت اوکړو.

د ساکا پارتین قبائیلو د اصل نسل په حقله یوه عامه نظریه دا ده چه دا قبائیل د سیتي قبائیلو ( SCYTIC ) یو ښاخ وو - دا سیتي قبائیل څوک وو؟ او د دوی وړومبې مسکن کوم ځائ وو؟ د دې سوالونو په حقله به په لنډ ډول دا سې اووایو:-

چه د کره ارض د اوچت سطح هغه حصه چه قطب شرخاته ته واقع ده - او نن ورځ ورله "سطح مرتفع پامیر" وئیلې شي - د قدیم تاریخ د یې شماره قامونو وړومبۍ ټاټوبۍ شي - د دې علاقې نه په مختلفو زمانو کښې پرله پسې د قامونو او قبیلو سیلابونه روان شوي دي - چه ځنې په دوی کښې په مینځنۍ ایشیا کښې آباد شوي دي - او ځنې وړاندې تلي او شمالي یورپ ته رسیدلي دي - او د دوی ځنې قامونه د وسطي ایشیا نه هم را ښکته شوي او په جنوبي او مغربي ایشیا کښې اباد شوي دي.

دا قبائیل به چه د خپل اصلي ټاټوبي نه اووتل - او په نورو ملکونو کښې به استوګن شول نو د نوي محیط و ماحول خصوصیاتو به پرې اثر اوکړو - او د زمانې په تیریدو سره به ټوټه ځنې ملک مقامي او اصلي خلق اوګرځیدل - او یو نوې قوم به ترې جوړ شو - ولې د دوی په اصلي وطن کښې به د انساني نسل چینې عوام په جوش کښې وې - او و خت په وخت به ئې

غورزنګونه وهل او د نوی نوی قبیلو سیلابونه به ترنه روانیدل. او په دے ډول به ئے په مختلفو ملکونوکښې د نوی نوی قامونو تخلیق کولو.

دا علاقه ترمودو مودو پورے په خپل اصلی وحشیانه حالت قائمه وه. لیکن کوم قامونه او قبیلے چه د دے علاقے نه وتلے او په نورو ملکونوکښې میشته شوے وے. هغوی د زمانے په تیریدو سره د هغه نوی ملکونو او نوی ماحول خصوصیات اختیار کړی وو. او د تهذیب و تمدن په دائره کښې ئے قدم کیښودلے وو. تر دے چه څه موده پس په دوی کښې او د دوی په هغه پخوانو اصلی وطنیانوکښې د مشابهت او اشتراک یوه ذره هم پاتے نۀ شوه. د دوی پخوانی وطنیان لا هغه شان غرځنی او وحشیان وو مګر په دوی کښې زراعت، صناعت او د ذهنی ترقئ مختلف ښاخونه ټوکیدلی وو. مګر د دوئ داصلی علاقے استوګن د دے صفتونو نه ناآشنا وو. دغے علاقے او صحرائی ژوند او د غرځنی خوئیونو زیګوالی او سختوالی داخلق د هغه وخت د مهذبو او شائسته قامونو د پاره بو بلا کړی وو.

د تاریخی زمانے داغاز نه اول د شمال مشرق د دے قبیلو مهاجرت شروع شوے وو. او په تاریخی زمانه کښې هم د دے مهاجرت سلسله په خپل زور دستور جاری وه. د دے وحشی او خانه بدوشو قبائیلو یوه ډیره ابتدائی او اولنئ ډله هغه وه چه اوس په تاریخ کښې د "آریائی نسل" په نامه یادیږی. د دے آرین النسل خانه بدوشو قبائیلو یوه برخه هغه چه د وسط ایشیا نه د مغرب په لور روانه شوه. او په فارس میډیا او اناطولیه کښې میشته شوه. د دوئ څنې قبائیل په باخترکښې خوارهٔ شول. او څنې خلق ئے د کوه هندوکش په جنوبی لمنوکښې راښکته شول، څنې په اباسیند پورے وتل. او د پنجاب مزکے ئے اونیولے. د دے قبائیلو یو وسیع ښاخ هغه ووچه د بحیره اسود نه واخلے د دریاے ډینیوب تربالائی وادئ پورے خور شوے وه. دا یورپی ښاخ په تاریخ کښې د ستهین (SCYTIC) په نامه مشهور دے. او دا نوم د دے خلقو د پاره یونانی مؤرخ هیرودوتس استعمال کړے دے.

د دے قبائیلو د ډیرے زمانے نه د خانه بدوشئ ژوند تیرولو. په قبل التاریخی دوره کښې چه د باختر په زرخیزه علاقو به د وسطی ایشیا کومو خانه بدوشو قبائیلو تاختونه کول هغه هم د غه خلق وو. چه وروستو په تاریخی زمانه کښې ورله سیتی قبائیل وئیلے شوی دی. او په اوستا کښې دا خلق د "توریا" په نامه یاد شوی دی.

دا لفظ (توریا) به د باختر هغه استوګنو آریائی قبائیلو کوم چه په دغه علاقو کښې په مختلفو

زمانو کښې آباد شوی او د تهذیب و تمدن په دائره کښې داخل شوی وو۔ د دے خانه بدوشو قبائیلو د پاره به استعمالولو د تاریخ په هره دوره کښې مهذب قامونه اوحکومتونه د دے سیتی (خانه بدوشو) قبائیلو د تاخت و باخت نه په خپل حفاظت مجبور وو۔ ساکا او پارتین قبائیل هم د دے سیتی قبائیلو د سیلاب یوه چپه وه۔ د دے دوارو قبائیلو پیش قدمی په اصل کښې د سیتی قبائیلو د جنوب په لور د هغه وسیع حرکت یوه حصه وه چه د هغې په نتیجه کښې د دریمې صدۍ ق۔م په نیمه کښې د باختر او ایران یونانی حکومتونه دیکه شول۔ یعنی پارتیانو په ایران کښې یونانی حکومت ته دیکه ورکړه۔ او هلته ئې خپل حکومت قائم کړو۔ او ساکا قبائیلو د باختر یونانی حکومت ته زور ورکړو۔ او د دوئ د باؤ او فشار نتیجه

کښې د باختر یونانی حکومت د زمانې په تیریدو سره ام زیلے شو۔ او د هغې په ځائې د دے خلقو (ساکا) د کندهارا بلکه د پنجاب په زمکو هم خپل حکومت قائم کړو۔

د «پارتیانو» په باب کښې یوه نظریه دا هم ده، چه «پارت» چه د یو قام نامه او د دوئ د استوګنې په وجه د دوئ علاقه هم په «پارتیا» مشهوره شوی ده۔ د دے لفظ د اکثرو عالمانو توجه خپل ځان ته راښکلې ده۔ او د دے په حقله ئې د مختلفو نظریو اظهار کړے دے۔ چنانچه ځنې عالمان د دے عقیدے ته هم مائل دی۔ چه دا خلق د باختری آریانو سره اړه لری او په هغه قبائیلو کښې شامل دی چه د هغوی یو ښاخ په رګ ویدا کښې د «پکتها» په نامه ذکر شوے دے۔ او د دے خلقو هغه برخه چه په باختر کښې پاتې وه۔ په اوستا کښې د «بخد» او «بخدی» په لفظونو ذکر ده۔

د دے خلقو په خیال کښې د آریائی قبائیلو د عمومی مهاجرت په زمانه کښې چه اندازاً د ۲۰۰۰ ق۔م په حوالو شا کښې شروع شوے وو۔ د «پکهت» یا «پښت» قام یوه ځانګه د «بخدی» په علاقه کښې پاتې وه۔ او بله ځانګه ئې د نورو آریائی قبائیلو سره د هندوکش په جنوبی درو راتیره شوی وه او د سپین غر چار چاپیره علاقو کښې میشته شوی وه۔ چه وروستو دغه زمکه د دوئ د استوګنې په وجه د «پښتیا» په نامه مشهوره شوه۔

د دے نظرئې مطابق د «پکهت» اولس کوم خلق چه په بخدی کښې پاتې وو۔ په هغوی کښې یو مهمه ځانګه ئې د پارت په نامه مشهوره وه۔ دا خلق تر ډیرے مودے د هندوکش په شمالی علاقو کښې استوګن وو۔ حتیٰ چه د دوئ ځنې قبیلے د باختر د یونانی سلطنت د استقلال تر وخته هم په دے علاقو کښې موجودے وے۔ لیکن د دوی اکثرے قبیلے د

اوستائ دورے په آخری وختو نوکښے د بحیره خضر او هری رود ترمینځه خورے شوے وے - چونکه په دے خلقو کښے د « پارت ځانګه » مهمه وه - نو د دوئ د استوګنے په وجه دغه علاقه د « پارتیا » په نامه مشهوره شوه - که چرے د « پارتیا او پښتیا » کلمو ته فکر اوکړے شی نو یواځے دا نه چه هم وزن او هم اهنګ معلومیږی - بلکه په یو معین شکل و صورت جوړے ښکاریږی - د دے نه علاوه ځینے عالمان د لفظ « پارت » معنے « تبعید شده » هم کوی - او د دے معنی نه هم دا معلومیږی چه دا خلق (پارت) به د دے علاقے (پارتیا) اصلی استوګن نهٔ وو -

« پاست او پارتیا » د دارا یوش په کتبه بیستون کښے د « پرثو او پرثیا » په ډول لیک دی - په آریائ ژبو کښے د (ث - س) د آوازونو ترمینځه یو مشترک آواز وو - چه د (ش - شه) د آواز سره به ئے نزدیکت لرلو دا لفظونه یعنے « پرثو او پرثیا » په دے وجه د « پښتو او پشتیا » سره هم نزدیکت لری - دا خبره هم د فکر وړ ده - چه د آرمینی لیکوالو په لیکنو کښے « پارت » د پهل « په لفظ یاد شوے دے - په دے ډول په « دری ژبه » کښے د بلخ (بخد) نامه بخل ، باخل راغلی ده - د اوستائ ژبے د (د) په ځائے په پښتو ، پهلوی او دری ژبو کښے (ل) وئیلے شی - په دے بنا د آرمینیا نو پهل ، بخل ، باخل او د اوستائ ژبے (بخد) یو لفظ دے - او د فقه اللغت د مخے مطابقت څرګند دے - او د دے نه هم د پارتیا نو د بلخ (یعنے باختر) سره تعلق واضح دے -

د « پارتیا » صوبه په پنځمه صدی ق - م کښے موجوده ده - ځکه خو د دارا یوش د مفتوحه ملکونو په لړ کښے ذکر شوی ده - دا صوبه د آرمینیا نو او پکتیا نو په شمولیت سره د دارا یوش د سلطنت د یارلسمے صوبے په ډول هیرو ډوټس هم ذکر کړی ده - د دے نه هم دا قیاس مرسته موی چه پارتیان او پکتویس به د یوے ونے دوه ځانګے وے او دوی به پښتانهٔ وو -

یو اطالوی لیکوال « مسټر جوسټن » چه د دویمے صدئ مسیحی لیکوال دے ، د پارتیانو د ژبے په مقله وائ چه د پارتیانو ژبه د میډی ژبے او د سیتی قبائیلو د ژبو ترمینځه مینځه وه - په تیرو پانو کښے مو دا وئیلی دی چه د میډیا نه مراد د ایران قطبی قبلیځه علاقه وه او په دے علاقو کښے د « پارسوا » قبائیلو یوه ځانګه اباده وه - او « پارسوا » قبائیل هغه خلق وو چه د عموی مهاجرت په وخت کښے د ایران په لور تلی او په هغه زمکه میشته شوی وو - او د « مسټر ګریرسن » دا شهادت مو هم لوستلے دے چه میډی ژبه (یعنی د میډیا د استوګنو)

د هند اروپائي ژبو په کورنۍ کښې په مشرقي ډله کښې شامله ده. او پښتو هم د دې کورنۍ ژبه ګڼلې شي. نو د پورته توضيحاتو په رڼا کښې که «پارتيان» او پکتويس د يو تن دوه ځانګې اوګڼلې شي، نو موږ به دا سې او وايو چه اطالوی ليکوال مسټر جوسټن چه د پارتيانو دکومې ژبې ذکر کړې دې د هغې نه مراد پښتو ژبه ده يعنې پښتو داسې ژبه ده چه د ميډی ژبې او سيتي قبائيلو د ژبو ترمينځه مينځه وه. د دې قياس مرسته د مشهور مستشرق مسټر مارګن سټرن د دې وينا نه هم کيږی چه «پښتو ژبه د ساکا قبائيلو يو اولسی ژبه معلوميږي. ليکن د دې ژبې او د ساکا قبائيلو د اولسی ژبو ترمينځه ډير قريبي تعلق ځرګندول ګران دی.» د پښتو ژبې سره د ساکا قبائيلو د ژبې نزديکيت د ساکا قبائيلو د باچايانو د نومونو نه هم ځرګنديږی. او دا په دې قياس دلالت کوی چه دواړه قامونه د تهذيب په دائره کښې د داخليدو نه اول اول ډيره موده په خپلو کښې نزدو پاتې شوې وو. ځکه د دوی ژبو د يو بل سره قرابت او نزديکت لرلو.

د پارتيانو د ژبې او پښتو ژبې په حقله موږ د دوؤ عالمانو شهادت اولوستلو. په دوی کښې يو (جوسټن) د نن نه څه اتلس کاله وړاندې تير شوې دې. او بل (مارګن سټرن) د نن‌ۍ زمانې يو لوئ دانشور دې او د «پښتو او پښتنو» په حق له دده راځې ډيره اهمه ګڼلې شي. د دواړو ليکوالو د وينا نه پښتو ژبه او د پارتيانو ژبه د يو اولس ژبه معلوميږی. په دې ډول چه د جوسټن په قول د پارتيانو ژبه د ميډی ژبې او سيتي قبائيلو د ژبو ترمينځه د اتصال کړئ وه. او د مارګن سټرن په قول پښتو ژبه د ساکا قبائيلو يو اولسی ژبې ته نزدو وه. دا ظاهره ده چه د جوسټن سيتي قبائيل او د مارګن سټرن ساکا قبائيل يو خلق وو. د دې نه علاوه د تهذيب په دائره کښې د داخليدو نه اول ساکا او پارتين دواړه قبائيل د سيتي قبائيلو يو ښاخ وو. نو د دوی ژبې به هم تقريبًا يو شان وې. او د دوی معاشرتي ژوند به هم په يو ډګر تيريدو. نو موږ دا قياس کولې شو چه د پارتيانو ژبه به پښتو وه. او س که چرې د پارتيانو په حقله په دويمې نظريې غور او کړو نو دا قياس به بې ځايه نه وی چه پارتيان به هم د هغه اولی يو ښاخ وو چه په هغ کښې يو مهمه قبيله د «پکتها» په نامه مشهوره وه. او د پکتيانو د مهاجرت په وړځو کښې به په باختر کښې پاتې شوې وی. او په وروستو زمانه کښې به د بحيره خضر او هری رود په علاقو کښې خوارۀ شوی وی. د دې نه علاوه د پښتو ژبې او پارتيانو د ژبې ترمينځه نزديکت د هغه پارتي بادشاهانو د نومونو نه هم کيږی. کوم چه په ګندهارا او مشرقي افغانستان حکومت کړې دې.

د پارتیانو پېژندلو چه کومې دواړه نظرئې بیان شوې په وسیع معنیٰ کښې دواړه نظرئې په خپل مینځ کښې څه بنیادي اختلاف نه لري - د عامې نظرئې مطابق «ساکا او پارتین» دواړه قبائیل د سیتي قبائیلو یو ښاخ وو - دا سیتي قبائیل نساً آرین او په مختلفو قبیلو کښې ویش وو - ولې تر ډیرې مودې د خانه بدوشئ په حالت کښې وو - او په مختلفو وختونو کښې د تهذیب په دائره کښې داخل شوي وو - د دریمې نظرئې مطابق پارتین قبائیل د هغه باختري آریانو یو قبیله وه - چه د هغوی څینې اولس په قدیمه زمانه کښې د عمومي مهاجرت په دوران کښې د باختر نه کوچیدلي او د سپین غرهٔ په خوا او شا علاقو کښې میشته شوي وو - دا خلق په رګ ویدا کښې د پکتهاه په لفظ ذکر شوي دي[1] - د ساکا قبائیلو په نسبت پارتین قبائیل ډیر آګاهمو د تهذیب په دائره کښې داخل شوي وو - یعنې دریمې صدئ ق - م په نیمه کښې چه باختري یونانیانو د شام د یوناني حکومت نه بغاوت اوکړو - او په باختر کښې یو آزاد او مستقل حکومت قائم کړو - هم په دغه ورځو (سنه ۲۴۹ ق - م) کښې ارساس نومې یو پارتي سردار په پارتیا کښې هم بغاوت اوکړو - او د شام

[1] دا خبره هم د فکر وړ ده چه څینې مورخین لکه «مسټر ټیلر» د ایران ارساسي خاندان چې په اسلامي تاریخونو کښې د اشکاني خاندان په نامه ذکر شوې دې پښتون ګڼي - د دې نه هم دا قیاس مرسته موي چه پارتین او پښتانهٔ به یو خلق وو - په دې لړ کښې مسټر ټیلر داسې وائي «هر کله چه د حضرت عیسیٰ دین په خوریدو شو - نو اګر چه د پښتون قام بادشاهانو د دې په ترقئ کښې خومره زیات کوشش نهٔ کولو - ولې د دې په لاره کښې ئې څه بندیز هم نهٔ اچولو - بلکه کله کله به ئې د دې مدد هم کولو - چنانچه د عیسوي دین کوم پیرو کارچه د کافرانو د ظلم نه یا مومنو ته د اوئیل پکار دي چه د خپلو ورونو د ظلم نه چه هغوی د دې دین نه مخالف وو او تښتیدل - نو هغه وخت د دې قام (پښتون) بادشاهانو په خپل ملک کښې پناه ورکړه - ولې دا د افسوس خبره ده چه د اشکاني خاندان بادشاهانو د خپل رعیت یعنې د پارسي قوم تعاون حاصل نه کړې شو بېره د دې چه د دې خاندان حکومت په ایران باندې د څلورو سوو کالو نه زیاته عرصه قائم وو - ولې د دوی عادتونه خیالات او تعصب د پارسي قوم نه برعکس وو - او د دې نتیجه دا شوه چه اخر کار «اردشیر بابکان» چه د قوم پارسي نه د ساسان څوئې وو - او د قدیمي بادشاهانو په سلسله کښې ئې د جمشید او کیخسرو د نسل دعویٰ لرله - د پارسیانو نښان او چت کړو - او په کال سنه ۲۲۶ کښې پښتون قام د شمالي غرونو په لور اوزغلولو - او د دې نه پس د پارس تاریخي نوم ایران شو - او زردشتي مذهب بیا هغه قدیم رونق حاصل کړو - د دې انقلاب په وجه د مشرق په لور د مسیحي دین خوریدل بند شول - او د دې مذهب د مغربي دنیا مخه اونیوله - د ایشیا په تاریخ کښې د پښتون قوم د سلطنت زوال هغه نسبت لري کوم چه د یورپ په تاریخ کښې د سلطنت روم د بربادئ دې - یعنې د دواړو سلطنتونو زمانه هم هغه ده کومه چه پخوانئ تاریخ د اوسني تاریخ نه بېلوي» د ټیلر صیب د قدیم تاریخ انګریزي ترجمه ص ۲۸۱ په حواله د مرآة العالم جلد اول حصه دوم ص ۲۶ -

د یونانی حکومت نه ئې ځان ازاد کړو او د خپل مستقل سلطنت بنیاد کېښود چه وروستو ئې په ټول ایران قبضه اوکړه - د ارساس د خاندان حکومت په ایران باندې څه پنځه سوه کاله قائم وو. ولې په ساکا قبائیل په دغه وړه وکښې لا هغه شان د خانه بدوشئ په حالت کښې وو - غرض د پورته وضاحت رڼا کښې دا قیاس بې ځایه نهٔ معلومیږی چه پارتیان او پښتانهٔ به یو خلق وو او په ډیره قدیمه زمانه کښې به د یو بل نه بیل شوی وی.

اوس به د ساکا قبائیلو جاج واخلو:-

لکه چه اوو ئیلے شول ساکا قبائیل هم د سیتی قبائیلو یو ښاخ وو - چه د دریمې صدئ د نیمې نه وروستو هم لا د خانه بدوشئ په حالت کښې وو - او په دوی کښې لا هغه د دور وحشت خصوصیات ترڅه حده موجود وو - د دوئ د استوګنې علاقه په مشرقی ترکستان کښې د سنکیانګ منطقه او د سیر دریا علاقه ده - په هخامنشی دوره کښې دا خلق ښهٔ مشهور وو - او د دارایوش په کتباتو کښې په مختلفو نومونو ذکر شوی دی - مګر د ټولو نه مراد هم دغه ساکا قبائیل دی - مشهور یونانی مورخ هیرودوټس څرنګ چه د زرکیسز د فوځونو په لړ کښې د "ګندهاریانو او پکتیانو" ذکر کړے دے. دغه رنګ ئې د دوئ ذکر داسې کړے دے:-

"ساکیانو پرتوګو نه اغوستی وو - اوږدے مخروطی ټوپئ ئې په سر وے او د دوی سره خپلې وطنی غشی لیندے او پیښی قوزے وے - او یو قسم تبرونه هم ورسره وو - چه دوی به ورله "ساګارس" وئیل - دوی په حقیقت کښې اصلی "آمورجین" سیتی قبائیل وو. لیکن ایرانیانو به دوئ ته ساکیان وئیل - ځکه چه ایرانیانو به ټول سیتی قبائیل هم په دے نامه یادول "- د هیرودوټس د دے بیان تصدیق د "دارایوش او زرکیسز" دوارو بادشاهانو د کتباتو نه هم کیږی - په دے کتباتو کښې د "آمورجین" لفظ څو ځایه ذکر شوے دے - او شاید چه د دے نه مراد هغه ساکا قبائیل وو - کوم چه د رود آمو په غاړه اوسیدل.

غرض د پورته وضاحت نه دا خبره معلومه شوه چه ساکا قبائیل هم د سیتی قبائیلو یو ښاخ وو - او د شپږمې صدئ ق-م په خوا و شا کښې د رود آمو په منطقه کښې اوسیدل. او د خانه بدوشئ ژوند به ئې تیرولو - دغه ساکا قبائیل د ځینې نورو وحشی قبائیلو چه په تاریخ کښې د یوچی په نامه مشهور دی - د دباؤ او فشار په نتیجه کښې د خپلې علاقې نه په وتلو مجبور شول او د باختر په لور ئې مخه اوکړه - دغه وخت په باختر کښې د یونانیانو آزاد او مستقل حکومت قائم وو - او پارتیانو هم د دے نه څه سل کاله اګاهو په ایران کښې خپل حکومت تشکیل کړے وو - په دے زمانه کښې باختری یونانیانو د هند په علاقو کښې خپل سلطنت

خورولو۔ دغه وجه ده چه پارتیانو هم د دوی د دے مصروفیت نه فائده اخستی ده۔ اود هرات په منطقه کښے په تاختونو مصروف وو۔ او ساکا قبائیل د خپل کوچ او تګ په دوران کښے د پارتیانو سره مخامخ شول۔ اودواړو قبائیلو ترمینځه سخت جنګو نه شروع شول۔ د دے په نتیجه کښے ساکیانو مجبوراً د خپل کوچ او تګ رخ بدل کړو۔ او د سویل په لور روان شول۔ او د «کی پن»[له] په علاقه کښے ئے خپل حکومت قائم کړو۔

د «کی پن»[ته] په اکثرو احتمالاتو په دغه زمانه کښے د هیرمند او ارغنداب ترمینځه علاقه مراد ده۔ په دے علاقه کښے د وړاندے نه د پارتیانو څنے اولس استوګن وو۔ د ساکا قبائیلو په راتلو سره ورو ورو دا دواړه قامونه په خپلو کښے خلط ملط شول۔ او په ژبه، دودونو، دستورونو او سیاسی روابطو کښے ترخپل مینځ سره داسے اوګنډلے شول۔ چه د یو بل نه ئے بیلتون ګران شو۔

د هیرمند او هامون علاقه د هخامنشیانو په دوره کښے د «زرانګیانا یا زرنجیانا» په نامه مشهوره ده۔ ولے د ساکا قبائیلو د استوګنے په وجه په «ساکستانا» مشهوره شوه۔ وروستو په اسلامی دوره کښے عرب مؤرخینو دغه علاقه د «سجستان» په لفظ یاد کړی ده۔ او اوس ورله سیستان وئیلے شی۔ په «اراکوسیا» کښے د شمال په لور د غزنی پورے د ساکیانو موجودګی د دوی د مسکوکاتو نه څرګندہ ده۔ دغه شان په لویدیز بلوچستان کښے د کوه تفتان په علاقه کښے هم د ساکا بادشاهانو مسکوکات موندلے شوی دی۔ او په دے دلالت کوی چه د کوټے قلات علاقے هم د دوی په حکومت کښے شاملے وے۔

داخلق «ساکا قبائیل» د خپلے زمانے بهترین شهسواران وو۔ او د هغه زمانے د جنګ په فنونو کښے ډیر ماهران وو۔ د دوی د حیرت انګیزے کامیابئ لوئے باعث د دوی زره پوش سوارهٔ او مضبوطه تیز رفتاره رساله وه۔ د دوی د سورو سره به لوئے لوئے نیزے وے۔

---

له «کی پن» یو داسے علاقه ده چه د افغانستان په قدیم تاریخ کښے د هغے تعین لا تر اوسه هم مبهم دے۔ په مختلفو زمانو کښے د دے نه مراد مختلفے علاقے وے۔ هیون سانګ چینی زائر هم دا لفظ د یوے علاقے د پاره ذکر کړے دے۔ ولے په هغه وخت کښے د دے نه مراد د کاپیسا ریاست او هغه علاقه ده چه د رود کابل او د دے سیند د قطبی معاون سیندونو نه سیرا بیږی۔ ولے د ساکا قبائیلو د حکومت د تشکیل تو په زمانه کښے د دے نه مراد په اکثرو احتمالاتو د هیرمند او ارغنداب ناوه ګڼلے شی۔

ددوی دجنګ طریقې د هغه وخت په نورو قاموونو کښې مشهورې وې - ایرانی کتبات هم ددې خبرې مرسته کوی - چه د « پارتیانو » په شان دا خلق هم ډیر ښه شهسوار او خونړی جنګیالان وو - د دارا یوش سوم او سکندر په جنګ کښې چه کوم اهم کردار دوی ادا کړې وو د هغې تصدیق د هیرو ډوټس د بیان نه څرګند دې -

د ساکایانو د مسکوکاتو نه دا خبره څرګنده ده - چه دوی په اول ځل د « کې پن » په منطقه کښې دوېومبیٔ صدیٔ ق - م په آغاز کښې خپل سلطنت تشکیل کړو - او بیا په سیستان او « اراکوزیا » کښې د اقتدار د مضبوطولو نه پس دوی د ګومل ، توچي او کُرمې په درو کښې هارا او مغربي پنجاب ته راووتل - او دا علاقې هم فتح کړې - ددویٔ څنې خلق ګند هارا ته دجنوب په لار راغلی دی - او د بلوچستان او سنده علاقې هم فتح کړی دی -

دمسکوکاتو له مخه ددې ساکایانو قبضه په ګندهارا او شمالی هند باندې قریبًا سل کاله معلومیږی (یعنی د ۵۰ق - م نه تر ۵۰ پورې ) په دغه ټوله علاقه چه اوس ورله مغربي پاکستان وئیلے شی - او د شمالی هند په څنې علاقو ددویٔ قبضه وه - په دې سل کاله کښې د مسکوکاتو له مخه د دوی د څلورو بادشاهانو نومونه معلومیږی - او هغه « ماویس » « آزس اول » « آزلیزس » او « آزس دوم » دی -

**ماویس :-** عمومًا د ساکا قبائیلو د حکومت بانی ګڼلے شی - احتمال لری چه دې به د ارغنداب په کځی کښې د ۷۰ ق - م په خوا او شا کښې تخت نشین شوے وی - او د خپل مرګ د نیټې ۵۰ ق - م نه به ئے اول اول د ګند هارا او پنجاب علاقې په خپل حکومت کښې شامل کړے وی - دا هم احتمال کیدے شی چه ددهٔ د سلطنت پوله به د متهرې نه هم وړاندې تلی وی - ددې قیاس مرسته ددې نه کیږی چه د متهرې د ګنډ والو نه ددې خلقو رسا کایانو ) یو کتبه برآمد شوی ده - په دې کتبه کښې د یو مشر او سردار د مرګ په موقع درنځ او غم او ددې خلقو له خوا د هغهٔ په باب کښې د انتهائی عزت و احترام اظهار شوے دے - کیدے شی چه دا کتبه د « ماویس » د مرګ په موقع د هغهٔ تجهیز و تکفین په یادګار کښې کنستلے شوی وی - د ماویس د سلطنت صدر مقام د ټیکسلا ښار وو - دا ښار د باختری یونانیانو په وخت کښې هم صدر مقام وو - او په قدیمه زمانه کښې د هند او افغانستان ترمینځه یو اهم مقام ګڼلے شو -

د ماویس او ددهٔ دجانشینو مسکوکات د باختری یونانیانو د مسکوکاتو نه تقلید شوی دی - کوم چه ددې خلقو نه وړاندې په ګندهارا او پنجاب حکمران پاتې شوی وو - په دې مسکوکاتو

کښې په یو مخ په یونانی ژبه او یونانی رسم الخط کښې د بادشاه نوم او د هغهٔ القاب لیک دی. او په بل مخ په یو اولسی ژبه (پراکرت) او خروشتی رسم الخط کښې هم هغه مطالب لیکلی شوی دی. د ماویس د یو سکے (چه د سپینو زرو او په شکل کښې غونډه ده.) د یو مخ عبارت چه په اولسی ژبه (پراکرت) او خروشتی رسم الخط کښې لیک دے. په دے شان دے:-

اصل عبارت:- راجاتی راجاسا مهاتاسا موا سا

پښتو ترجمه:- د بادشاهانو بادشاه شاه اعظم مواس یا واسا.

ماویس شاید چه په کال ۷۷ ق.م کښې وفات شوے دے. ولې د ۷۷ ق.م نه د ۵۸ ق.م پورے د دے خلقو حالات په تیاره کښې دی. او د دے وجه دا معلومیږی چه د ماویس د مرګ نه پس به په دوی کښې د حصول اقتدار په غرض جنګونه شروع شوی وی. دا خاصیت د پښتنو هم دے. یعنی د دے خلقو (پښتنو قبائیلو) ضبط و تنظیم هم د یو مشر په وفات کمزورے شی. په دوی کښې د حصول اقتدار د پاره جنګونه شروع شی. او تر هغې د بل مشر اقتدار ته غاړه نهٔ ږدی ترڅو چه هغه د خپل زبردست شخصیت په زور ټول قام په یو مرکز را غونډ نهٔ کړی. په دے دول په ساکا قبائیلو کښې هم دا قبیلوی جنګونه ترشلو کالو جاری وو. او دا سے معلومیږی چه هرے قبیلے به د حصولِ اقتدار کوشش کوّلو تر دے چه آزس اول نومے یو سردار چه غالبًا د "آزی" یا "آزونی" قبیلے مشر وو. په ټولو قبیلو بالادستی حاصله کړه. او د ماویس نه پس هغه تخت نشین شو.

**آزس اول:-** په دے نامه د ساکا باچایانو په لړ کښې دوه سړی تیر شوی دی. د ماویس نه پس چه کوم سړے دا قتدار خاوند شوے دے. هغه د آزس اول په نامه یادیږی. او د تخت نشینۍ کال ئے ۵۸ ق.م ګڼلے شی. دا سړے یو مقتدر بادشاه او د وسیع سلطنت خاوند وو. د دے خبرے مرسته د دهٔ د نامے د سپینو زرو د هغه بے شمېره مسکوکاتو نه کیږی. کومے چه د ګندهارا او شمالی هند په علاقو کښې موندلے شوی دی. د دهٔ مسکوکات هم د "ماویس" په شان دی. د آزس اول په یو سکه د دهٔ نوم او القاب دا سے لیک دی:-

اصل عبارت:- "مهاراجاسا" "راجا راجاسا" "مهاتاسا" "ایاسا"

پښتو ترجمه:- شهنشاه شاه شاهان شاه اعظم ایاس (آزس)

**آزیلزس:-** د آزس اول نه پس "آزیلزس" حکمران شوے دے. د دهٔ د حکومت

زمانه د ۵۸ ق-م په حوا و شا کښې ګڼلے شی۔ د دهٔ په یو سکه د دهٔ نوم او القاب په خروشتی رسم الخط کښې داسے لیک دی :-

اصل عبارت :- "مهاراجاسا" "راجاراجاسا" "مهاتاسا" "ای لی زاسا"

پښتو ترجمه :- شهنشاه شاه شاهان شاه اعظم ای لی زا سا (آزی لزس)

**آزس دوم :-** د "آزیلزس" نه پس چه کوم سړے حکمران شوے دے هغه د آزس دوم په نامه مشهور دے۔ دا سړے په اکثرو قرائنو د آزیلزس ځوئے او د آزس اول نسبے وو۔ د دهٔ په زمانه کښې د سیستان او اراکوزیا په علاقه کښې د "پهلوا یا پارتین" قبائیلو یو نوی خاندان حکومت تشکیل کړو چونکه ساکا باچایان د خپلو هندی مقبوضاتو په سلسله کښې د خپل اصلی مرکز نه بے تعلقه شوی وو۔ په دے وجه په اراکوزیا او سیستان کښې پهلوا قبائیلو ته دا موقع په لاس ورغله چه دوی هلته خپل اقتدار زیات کړی۔ د آزس دوم د حکومت دوره د ۵۰ ق-م پورے ګڼلے شی۔ د دے نه پس د دے خاندان مسکوکات کم شوی دی۔ او دا امکان کیدے شی چه آزس دوم به د پارتین باچایانو د لاسه مغلوب شوے وی۔

# هندی پارتین یا پهلوا

پهلوا په اصل کښې هغه پارتین دی کومچه دهیر مند او سیستان په علاقو کښې استوګن وو۔ او د ساکا قبائیلو سره په ژبه، دودونو، دستورونو او سیاسی روابطو کښې خلط ملط شوی وو۔ دغه مخلوط عنصر څښې خلق د "ساک و پارت" په نامه او څښې د "پهلوا" په نامه یادوی۔ لکه چه وئیلے شوی دی د ارمینیا خلقو په پارتین د پهلوا په نامه یادول۔ نو په دے وجه د پارتیانو د پاره د "پهلوا" کلمه هم استعمالیږی۔ د جنوب غربی افغانستان دا پارتین د ساکا قبائیلو سره د اختلاط و آمیزش نه پس د یو مستقل سلطنت په فکر شول مګر د دے دواړو قبائیلو دا اختلاط په ژبه نسل او د سلطنت په اموراتو کښې دومره زیات دے چه تر اوسه پورے په قطعی ډول د "سیستان او اراکوزیا" د "ساکا او پارت" قبائیلو د بیلتون موضوع څه واضح شکل نهٔ دے اختیار کړے۔

لکه چه وړاندے اووئیلے شول ساکا قبائیلو په اول ځل خپل سلطنت د ارغنداب په منطقه کښې تشکیل کړو او بیا د فتوحاتو په سلسله کښې آخر دوی هم د خپل سلطنت مرکز پنجاب ته

منتقل کړو۔ او په دوی پسې پهلوا د سیستان او اراکوزیا په منطقه کښې د خپل سلطنت په تشکیل تو کښې مصروف شول ۔ چنانچه کوم وخت چه آزس دوم په گندهارا کښې حکمران وو۔ په دغه زمانه کښې د پارتیانو یو رئیس (ونونس) په سیستان او اراکوزیا کښې د خپل مستقل سلطنت بنیاد کیښود ۔ دغه سلطنت ځنې عالمان دهندی پارتین او ځنې ئې د پهلوا په نامه یادوی ۔ د دے سلطنت بانی ونونس گڼلے شی ۔ داسې خوا که خالص پارتی ووا و که د ساک و پارت د مخلوط عنصر نه غالباً د غربی پارتیانو لخوا د سیستان په علاقه کښې حکمران معلومیږی ۔ چه وروستو بیا خود مختاره شوے دے ۔

د «ونونس» او د دهٔ د جانشینو د مسکوکاتو یو خصوصیت دا دے چه د بادشاه د نامے سره د سکے په بل مخ د بادشاه د ورور یا ځوی نوم هم په خروشتی رسم الخط کښې لیکلے شوے دے ۔ او دا رواج به شاید چه د هغوی د عزت افزائی ، دلجوئی او په خپل مینځ کښې د سلطنت په امورا تو کښې د کامل تعاون د جذبے مد نظر جاری وو۔ د «ونونس» د یوے سکے په یو مخ د هغهٔ خپل القاب په یونانی رسم الخط کښې د هغهٔ د ورور (اسپالا هورا) ذکر داسې شوے دے:

اصل عبارت :- «مهاراجابراتا» «دراما سیا» «اسپالاهورا»

پښتو ترجمه :- (د) شهنشاه ورور (د) مذهب محافظ اسپالا هورا

د ونونس په یو قسم مسکوکاتو کښې د هغه د ورارهٔ نوم هم لیک دے ۔ په دے مسکوکاتو کښې د ونونس نامه د شهنشاه کبیر د لفظ سره په یونانی رسم الخط کښې لیکلی ده ۔ او د سکے په بل مخ په خروشتی رسم الخط کښې عبارت داسې دے :

اصل عبارت :- اسپالاهوراپوتراسا دراما سیا سپالاگا داماسا

پښتو ترجمه :- (د) اسپالاهوراځوی (د) مذهب محافظ «سپالاگا داماسا»

لکه چه د ونونس د مسکوکاتو نه څرگنده ده ۔ اسپالاهورا د ونونس ورور او شاید چه د هغهٔ نائب السلطنت وو ۔ او د خپل بادشاه ورور سره ئې په مسکوکاتو کښې نامه ضرب شوی ده ۔ د «اسپالاهورا» د خپلے نامے مسکوکات هم موجود دی ۔ او داسې معلومیږی چه یا خو به د دے ونونس نه پس بادشاه شوے وی ۔ او یا به د ورور په وخت کښې ورله هم د خپلے نامے د سکو وهلو حق حاصل وو ۔ د خپل خاندانی دستور مطابق د اسپالا هورا د نامے په مسکوکاتو کښې د سکے په بل مخ د دهٔ د ځوی نامه اسپالاگا داماسا لیک ده ۔ د سکے په یو مخ یونانی رسم الخط کښې د دهٔ نوم داسې لیک دے ۔

" د باد شاه ورور " " اسپالاهورا " او د سکے په بل مخ په خروشتی رسم الخط کښے دا سے لیکلی دی :-

اصل عبارت :- " اسپالاهورا پوتراسا " " دراماسیا " " اسپالا گا داماسا "

پښتو ترجمه :- (د) اسپالاهورا ځوئے (د) مذهب محافظ اسپالا گا داماسا

**گندو فارنس :-** په پهلوا خاندان کښے د ټولو نه مشهور بادشاه گندو فارنس دے. دده د تخت نشینئ کال په یقینی ډول د هغه کتبے نه معلومیږی کومه چه د تخت بائ (ضلع مردان) په کنډ والو کښے موندلی شوی ده - دا کتبه د گندو فارنس د تخت نشینئ په یوویشتم کال د ویساک په پنځم په کال ۱۰۳ بکرمی کښے لیکلی شوی ده. بکرمی سنه د (۵۸) ق-م نه شروع کیږی - نو دغه وخت یعنے د گندو فارنس د تخت نشینئ یوویشتم کال په مسیحی سنه کښے (۴۵) ته رسی - نوبیا په دے گندو فارنس په ۲۴م کښے تخت نشین شوے او په ۱۰۳ بکری کښے لا ژوندے وو -

په مسکوکاتو کښے چه د دے بادشاه کوم القاب او عنوانات موجود دی د هغے نه دا معلومیږی چه گندو فارنس د پهلوا خاندان یو مقتدر بادشاه وو - او د اکثرو عالمانو په خیال کښے د خپل سلطنت په آخری کالونو کښے د سیستان نه واخلے د پنجاب اوسنده پورے ټولے علاقے د دهٔ په سلطنت کښے شاملے وے - د دهٔ د سلطنت مرکز دارغنداب په منطقه کښے چرته یو ځائے وو - دا هم ممکنه ده چه په دے منطقه کښے چرته دے بادشاه په خپل نوم یو ښار هم آباد کړے وی - او هغه ئے د خپلے نامے په مناسبت د "گند و فار" په نوم منسوب کړے وی - او په اوسنی "قندهار" کښے د هغه زوړ ښار د نامے ریشه موجوده وی -

د گندو فارنس د حکومت یو مشهوره واقعه د "سینټ طامس" حواری دقید افسانه ده - یعنی دا وئیلے شی چه سینټ طامس څه موده د گندو فارنس په حکم قید شوے وو. او گندو فارنس دده د سوزولو حکم کړے وو. لیکن په دغه وخت کښے د دے حواری په کرامت د بادشاه سترگے او غړیدلے - او هغه په خپلو کارونو پښیما نه شو - او بیا ئے دا نه چه دا حواری ئے قید نه آزاد کړو بلکه په خپله ئے هم مسیحی دین قبول کړو - دا افسانه که حقیقت وی او که بے بنیاده قصه البته دا خبره درست ده چه په دے قیصه کښے چه د گند و فارنس او د هغهٔ د خپلوانو کوم نومونه ذکر شوی دی - هغه نامے د گندو فارنس په مسکوکاتو کښے هم موجودے دی - او تاریخی مرسته لری - په دے قیصه کښے گند و فارنس د مزدی (زردشتی)

مذهب پیروکار ښیځلي شوي دي. د ګندو فارنس په مسکوکاتو کښې د هغهٔ القاب دیندار، محافظ دین وغیره بیان شوي دي. د دې عنواناتو ته چه فکر اوکړې شي نو دا سي معلومیږي چه دده واقع نه اول ګندو فارنس د زردشتي مذهب پیروکار وو. او شاید چه وروستو به مسیحیت ته مائل شوې وي. ګندو فارنس د رنګا رنګو اخلاقو او د مسکوکاتو په شهادت دیو وسیع سلطنت خاوند وو. او هندي تهذیب ته مائل ښکاریږي. دا سي معلومیږي چه خپلو جانشینو ته دهٔ مضبوط حکومت نهٔ دې پریښودلې.

څنې عالمان د سنده او پنجاب په علاقو کښې ګندو فارنس د ساکا باچا آزس دوم جانشین ګڼي. دا خبره به شاید چه دا سې وي. چه د سیستان او ارغنداب په منطقو کښې د خپل سلطنت د استحکام نه پس به دهٔ دا هندي علاقې فتح کړې وي. او په خپل سلطنت کښې به ئې شاملې کړې وي. دده نه دا هم معلومیږي چه د ګندو فارنس نه وړاندې پهلوا بادشاهانو لکه «ونونس» وغیره به دا هندي علاقې نهٔ وې فتح کړې. د څنې پوهانو دا هم خیال دې چه د ګندو فارنس په زمانه کښې د ایران پارتي حکومت د خپل عروج انتها ته رسیدلې وو. او د قدیم هخامنشي سلطنت د جانشین په حیثیت ئې دا آرزو لرله چه په خپل سلطنت کښې هغه ټولې علاقې شاملې کړي. کوم چه په هخا منشي دوره کښې د دوي مفتوحه ملکونه وو. په دې بنا دوي د خپل سلطنت پولې د وادي سنده تر علاقې رارسولې وې. او د پنجاب او سنده علاقې د دوئ په حکومت کښې شاملې وې. په دې بنا دا امکان کیدې شي چه د ایران د پارتي حکومت او ګندوفارنس ترمینځه به په څه نه شکل کښې تعلق قائم وو.

د دې قیاس مرسته د «ایولو نیوس» نومې یو شاهي یوناني سیاح لیکونه هم کوي. دا سیلانې د سکندر په خوااوشا کښې د هندوستان د سیل په نیت راوتلې وو. د ایران پارتي بادشاه وردانس (VARDANAS) د دهٔ د آرام وآسائش په غرض دهٔ ته اسونه او د ضرورت نور ساز و سامان هم ورکړې وو. دا یوناني سیاح چه کوم وخت ټیکسلا ته رااورسید نو د هغه وخت د ټیکسلا حاکم فرا اوتس (فرهاد) نومیدهٔ. دا سیاح دده په باب کښې دا سې لیکي چه:-

«حاکم د یو ویشت کالو یو پېغلې ځلمې دې. د شام د یونانیانو سره ئې د هغوی په ژبه (یوناني) کښې خبرې کولې. د فلسفې، ښکار او نیزه بازئ سره ئې مینه لرله. دا حاکم د پهلوا بادشایانو د پارتي امیرانو یوه مکمله نمونه وه.» د دې شهادت نه دا

قیاس مرسته موي چه دګندو فارنس په وخت کښې د ایران د پارتي حکومت او دګند هارا او پنجاب د پهلوا حکومت ترمینځه ضرور څه نه څه تعلق قائم وو.

ګندو فارنس په ۵۰ کښې وفات شو. او دا سې معلومیږي چه د ده نه پس د ده ورارهٔ تخت نشین شوې دې. دا سړې په مسکوکاتو کښې په یوناني رسم الخط کښې ،،ابدا ګازس،، او په خروشتي رسم الخط کښې ،،اوادا ګازاسا،، او د سینټ طامس په قیصه کښې د ،،لبداس،، په نامه ذکر دې. د ده په یو سکه په خروشتي رسم الخط کښې دده نوم او القاب داسې ذکر شوي دي:

اصل عبارت :- ګندوفارا براتا پوتراسا مهاراجاسا تراتراسا اوادا ګاشاسا
پښتو ترجمه :- (د) ګندو فارنس (د) ورور لوئ بادشاه نجات ابدا ګازاساء
څوئ (ورارهٔ) ورکوونکے

**اورتاګنس** :- د ،، ابدا ګازاسا ،، نه پس په دې خاندان کښې بل بادشاه ،،اورتاګنس،، دې. د دې بادشاه او د وړاندې ذکر شوو بادشاهانو ترمینځه د خپلوي پوره پیوند او تعلق نهٔ معلومیږي. څینې عالمان دا ګمان کوي چه شاید دګندو فارنس ورور دې. د ده په مسکوکاتو کښې په یوناني رسم الخط کښې د ده نامه د شهنشاه کبیر اورتاګنس په الفاظو ذکر کړي ده. او په خروشتي رسم الخط کښې په څینې مسکوکاتو کښې په لفظ ،،ګودا،، او په څنو کښې ،،ګودراتا،، لیکلې شوي ده. د ،،ګودا،، کلمه څینې عالمان هغه لفظ ،،ګاد،، ګڼي. کومه چه د سینټ طامس په قیصه کښې ذکر ده. او په دې لفظ (ګاد) دګندو فارنس ورور ذکر شوې دې. څینې خلق دا لفظ دګندو فارنس د خپلې قبیلې مخصوص نوم ګڼي. د ،،ګاداسا،، لفظ د خروشتي رسم الخط په هغه کتبا تو کښې هم لیدلې شوې دې. کومې چه د پشکالاوتي (چارسده) د خواوشا نه راوتلي دي. به هر حال اورتاګنس نومې یو بادشاه په پهلوا خاندان کښې د (رومي صدئ رم) په دوئمه نیمه کښې سلطنت کړې دې. د ده د سلطنت زمانه عمومًا د ،،ابدا ګازاسا،، نه وروستو ګڼلې شي.

**پاکورس یا پاکورا** :- دا باچا د سنه ۲۵-۷۵ء په خوااوشا کښې سلطنت ته رسیدلې دې. د ده مسکوکات په شکل کښې غونډ او اکثر د تانبې دي. او په دواړو رسم الخطونو کښې ضرب شوي دي. د یوې سکې د یو مخ عبارت په خروشتي رسم الخط کښې داسې دې.

اصل عبارت :- مهاراجاسا راجاتي راجاسا مهاتاسا پاکوراسا
پښتو ترجمه :- (د) بادشاهانو بادشاه شهنشاه لوئ بادشاه پاکورا یا پاکوراسا

د دے سکے عبارت د ساکا بادشاهانو د مسکوکاتو د عبارت سره مطابقت لري، ممکنه ده چه دا بادشاه د ساکا قبائیلو یو غړے وی۔ او دګند و فارنس د جانشینو په وخت کښے ئے اقتدار حاصل کړے وی۔ او دګندهارا په علاقه کښے ئے خپل سلطنت قائم کړے وی۔ لکه چه د راتلونکی تفصیل نه به د دے قیاس مرسته اوشی۔

په ایران کښے د پارتیانو حکومت تقریبًا پنځه سوه کاله قائم وو۔ ولے د مشرق په لور دګندهارا او وادی سنده په مزکه د دوی سلطنت کم و زیات اویا کاله (۷۰) قائم پاتے شو۔ داسے معلومیږی چه دګندو فارنس نه پس په دے خاندان کښے پرے جنیے جوړے شوے وے۔ او په سلطنت کښے د زوال او کمزورئ علامے څرګندے شوے وے او په دے وجه د سلطنت مرکزی طاقت ختم شوے او ملک په مختلفو ریاستونو کښے تقسیم شوے دے۔ د پهلوا حکومت خاتمه دکوشانیانو په لاس اوشوه۔ داسے ښکاریږی چه د سلطنت د انتقال دا آخری او فیصله کن جنګ د ټیکسلا د فصیل په څوا او شا کښے شوے وو۔ دا تړی انکشافاتو په دوران کښے د آثار قدیمه ماهرینو ته د دے فصیل په کنډوالو کښے د غشو څوکے او توبرے په لاس ورغلی دی۔ چه هغه په دے جنګ کښے استعمال شوی وو۔ ممکنه ده چه حمله آور به د غشو ورولو نه پس د فصیل د یو ګټ په نړولو کښے کامیاب شوی وی۔ او لاس په لاس جنګ کښے به ئے په محصورینو غلبه موندلی وی۔ د دے جنګ نه پس دیو اهم مرکزی ښار په ډول د ټیکسلا هغه حیثیت ختم شو۔ کوم چه د سوونو کالونه دے ښار حاصل کړے وو۔

د ټیکسلا سره نژدو د شیر ټوپ نومے مقام په کنډوالو کښے د آثار قدیمه مشهور ماهر «سرجان مارشل» په یو خاورینه کټوئ کښے د سپینو زرو یو ویشت مسکوکات موندلی وو۔ په دے کښے څنے دګندو فارنس، څنے د پاکورس او څینے د ویماکد فیزس د نامے وے۔ د دے درے وارو بادشاهانو مسکوکات په یو ځائے موندلے کیدل دګندو فارنس او د پاکورس د زمانے د نزدیکیت نه علاوه په دے خبره هم دلالت کوی چه پاکورس به دګندو فارنس نه پس شاید په ګندهارا کښے خپل مستقل سلطنت تشکیل کړے وی۔ او په دے خبره هم دلالت کوی چه دګندهارا او وادئ سنده علاقے د پهلوا خاندان نه کوشانی خاندان ته منتقل شوی دی۔

# د ساکا پهلوا باچایانو نومونه او پښتو ژبه

د ساکا پهلوا بادشاهانو په مسکوکاتو کښے زموږ د غرض خبره د دے بادشاهانو نومونه، القاب او د هغې ژبے د لیک طرز دے. د دے بادشاهانو نومونه یعنې ماویس آزس، ونونس، گندوفارس، اورتاگنس او پاکورس وغیره په یو معین ساخت او شکل جوړ معلومیږی. او د مشرقی ایرانی (باختری) ژبے سره تعلق لری. د ماویس او آزس نومونه په پراکرت کښے د "مواسا" او "ایاسا" په شکل کښے لیک دی. دا نومونه اوس هم په پښتو ژبه کښے د امواس او ایاس (ایاز) په شکل کښے مروج او ژوندی دی. په اورتاگنس کښے د دے نوم وړومبے حرف (اور) په پښتو ژبه کښے په اصلی شکل کښے موجود دے. هم په دے ډول د "اسپالا هورا" او "اسپالا داګاما" په نومونو کښے د پښتو ژبے رېښه موجوده ده. دا نومونه اگرچه د باختری ژبے نومونه دی. ولے د پښتو ژبے سره ئے اشتراک څرګند دے. په دے ډول چه د دے دواړو نومونو وړومبے جزو د اوستائی ژبے (اسپا) او د پښتو ژبے (اس. اسپه) یو کلمه ده. د سنسکرت او اوستائی ژبے (د) د پښتو ژبے د (ل) متبادل توره دے. لکه چه د دے لفظونو د مقابلے نه دا خبره څرګنده ده:-

| اوستا | سنسکرت | پښتو | اوستائی اوسنسکرت | = | پښتو |
|---|---|---|---|---|---|
| ډکدر | دوهی تر | لور | (د) | = | (ل) |
| | | | (د) | = | (ل) |
| × | دیور | لیور | (د) | = | (ل) |
| دسه (DASA) | داشه (DASA) | لس | (د) | = | (ل) |

دا خبره د اوسنۍ فارسی (چه د پهلوی ژبے نه او پهلوی د ژند نه راوتلی ده) او د موجوده پښتو ژبے د مقابلے نه ښه څرګنده ده. یعنې کوم لفظونه چه په موجوده پښتو کښے په (ل) لیکلے او ویلے شی لکه په مثال کښے دا لفظونه :-

| فارسی | پښتو | فارسی | پښتو |
|---|---|---|---|
| دامن | لمن | دور | لرے |
| دود | لوګے | دیوانه | لیونے |

| | | | |
|---|---|---|---|
| دیدن | لیدل | دست | لاس |
| سپغل | سپیلنے | ده | لس (راو داسے نور لفظونه) |

اوس چه د دے پورته نومونو تجزیه اوشی نو "اسپالا" به د اوستا "اسپادا" شی. اسپا په معنیٰ د (اس - اسونو) او (لا) = (دا) په معنیٰ د (والا) یعنی خاوند مالک نو اسپالا = اسپادا په معنیٰ د اسونو مالک.

د دے نوم دویم جزو (هورا) یا "اهورا" په اوستائی ژبه کښے د نور او رنړا مفهوم لری. په پښتو ژبه کښے دا لفظ د (هور = اور) په شکل کښے موجود او هم دغه مفهوم اداکوی. نو د دواړو لفظونو ترمینځه د مفهوم اشتراک څرګند دے. د پورته تجزئ مطابق به د سپالا هورا معنیٰ شی د تیز رفتار اسونو خاوند.

اوس به دویم نامه "اسپالا ګا داما" واخلو.

په دے نوم کښے اسپالا = اسپادا په معنیٰ د اسونو خاوند. د دے لفظ (ګا) او د پښتو ژبے (ګے) یو مفهوم اداکوی. دا د تصغیر علامه ده. او دلته په معنیٰ د ځوی ده. (ګے) اوس هم په پښتو ژبه کښے د تصغیر نښخه ده. "داما" په معنیٰ د سردار یا مشر. نو په مجموعی ډول د دے ټول لفظ معنیٰ شوه. د اسونو د خاوند ځوئ سردار.

د ساکا پهلوا باچایانو به دا قاعده وه چه دوی به د خپل سلطنت په لویو لویو علاقو باندے د خپلو نائبانو په ذریعه حکومت کولو. د دوی دا نائبان به د هخا منشی دورے په تقلید کښے د ستراپ په نامه یادیدل. لفظ ستراپ په سنسکرت ژبه کښے دکشاترپه او مهاکشاترپه په الفاظو ضبط دے. دا ستراپان به د "ساکا پهلوا" هم قبیله او خپل خلق وو. او دا سے معلومیږی چه د ستراپئ (ګورنرئ) دا عهده به د دوئ په خاندان کښے موروثی وه. دوئ به هسے په نوم د مرکزی حکومت ماتحت وو. ولے عملاً به دوی خود مختاره وو. د دغه شان د ستراپانو یوے ګورنرئ په کاپیسا کښے حکومت کولو. دا ښار د رود پنجشیر او رود غوربند د اتصال په مقام آباد وو. بله ګورنرئ په ټیکسلا کښے حکمرانه وه. د دغه رنګ په وادئ جمنا او اُجین کښے هم دا ستراپایانو حکومت وو. د اُجین د استراپانو د ګورنرئ مشر "چیشتانا" نومیده. د دغه لفظ بټولمی جغرافیه اول د "ټینبتانا" یا "تنبتانا" په الفاظو ضبط کړے دے. دا لفظ د "چیشتن" چینبتن، ټنبتن یا تنبتن په شکل کښے په پښتو

ژبه کښې تر اوسه ژوندی او مستعمل دی۔ او معنیٰ یې د"بادار-خاوند-مالک-

د" ساکا پهلوا" قبائیلو د اصل نسل، ژبې او د دوی د بادشاهانو د نومونو او د دوی په مسکوکاتو کښې چه کومه ژبه په کوم طرز لیکلې شوې ده۔ د دې په حقله چه څه اووېلې شول که څوک په هغې غور او ښې نو داوېل به بې ځایه نه وی چه د دې قبائیلو د ژبې او پښتو ژبې تر مینځه څه نه څه تعلق ضرور وو۔ او داوېل به بې ځایه نه وی چه پاړتین به د پښتو یو ښاخ وو۔ دا خبره هم د فکر وړ ده چه د پښتو دیو علاقې (غور) د یوې قبیلې (شنسبانی تېبر) په باب کښې د ځنې پوهانو دا خیال دی چه دا خلق د ساکا قبائیلو اخلاف وو۔ نو موږ داوېلې شو چه د پوره وضاحت په رڼا کښې ساکا قبائیل هم ضرور په څه نه څه شکل کښې د پښتو سره وابسته پاتې شوی د.

د ساکا پهلوا باچایانو په مسکوکاتو کښې چه کومه ژبه لیکلې شوې ده هغه (د اوستا، سنسکرت او زړې فارسي) یوه مخلوطه لهجه معلومیږی۔ او په خپل ساخت کښې یوه اولسی ژبه ده۔ دا ژبه یقیناً پښتو نه ده۔ البته د باختری لهجو نه یوه لهجه ورته وېلې شو۔ امکان لری چه په دغه زمانه کښې او شاید چه د دې نه به وړاندې هم په ګندهارا او مشرقی افغانستان کښې عامه او مروجه ژبه هم دا وه۔ او دا به د خط و کتابت ژبه وه۔ او د اولس هره فرقه به پرې پوهېدله۔ چونکه د مسکوکاتو تعلق د اولس د هرې فرقې سره وو۔ نو د ساکا پهلوا حکمرانانو به هم دغه ژبه سرکاری او درباری ګڼلې وی۔ دا هم ممکنه ده چه دا ژبه د ساکا پهلوا خلقو خپله ژبه وی۔ به هر حال موږ داوېلې شو چه په دغه زمانه کښې به پښتو ژبه هم دغه شان وېلې شوه څه رنګ چه د ساکا پهلوا بادشاهانو په مسکوکاتو کښې په خروشتی رسم الخط کښې لیکلې شوې ژبه وېلې شوه۔ که څوک موږ د مسکوکاتو دې ژبې ته فکر اوکړو نو په ځینې مسکوکاتو باندې د بادشاه نوم او القاب د کلمه اضافت سره ذکر شوی دی۔ او په ځینې مسکوکاتو کښې د اضافت حرف نشته۔ که څوک موږ د مسکوکاتو د دې ژبې د لیک په ترکیب غور اوکړو نو دا سې معلومیږی چه په پښتو ژبه د نرې لهجې ویونکی پښتانهٔ هم دغه شان خبرې کوی۔ او د دوی دا خبرې لیکلې هم په دې ډول شی څه رنګ چه په دې مسکوکاتو د بادشاهانو نومونه او القاب لیکلې شوی دی۔

د بده مرغه د پښتو ژبې د ډېرې پخوانۍ زمانې څه نمونه نن ورځ په لاس کښې نشته۔ د پښتو ژبې نسبتاً زاړهٔ او پخوانی کتابونه چه کوم نن ورځ موجود

دی - د هغوی لهجه او اصلی الفاظ په اوسنۍ لهجه کښې تبدیل کړے شوی دی - او دا اندازه نشی لګیدے چه د ن نه څو سوه کاله اګاهو پښتو ژبه څه رنګ وئیلے او لیکلے شوه - البته اوس اوس د پښتو اکیډیمۍ پلینبور یونیورسټۍ په زیار د «مروتو کسرونه» نومے یو کتاب په خپل اصلی شکل او لهجه کښې چاپ شوے دے - دا کتاب د نرے لهجے د پښتو د ژبے نسبتاً یوه پخوانۍ نمونه ده - چه موبږ ئے په اصلی شکل کښې وینو - او دا ورنه معلومیږی چه د ن نه دوه دوه نیم سوه کاله اګاهو به د نرے لهجے ویونکو پښتو څه رنګ خبرے کولے - او د دوی دا خبرے به څه رنګ لیکلے شوے - د دے کتاب ته یو څو مثالونه پیش کول - به زما د دے پورته قیاس په مرسته کښې بے ځایه نهٔ وی :

| | |
|---|---|
| دوه سوه کاله وړاندے د | دوه زره کاله وړاندے دګند هارا یو |
| نرے لهجے پښتو | اولسی ژبه چه په مسکوکاتو لیکلی شوی ده |

---

| | |
|---|---|
| اول مثال :- رئ حرف اضافت | (رئ) حرف اضافت |

بس که اے جرسه ! رئ میړو - - - - - راجا (رئ) راجا سا مها تا سا موا سا خبرے وایه

مطلب :- اے جرسه ! (اوس) بس

کړه - (او) (د = ئ) میړو خبرے وایه - - - (د = ئ) شاهانو شاه ، لوئے بادشاه موُس

دویم مثال :- رئ حرف اضافت - - - - (رئ) حرف اضافت

| | |
|---|---|
| تا رئ شاغلتو جبرے میلے | مهاراجا ، راجا راجاسا - - - - - - - - |
| ته دا تللے | «کودو فاراسا» |

مطلب :- (د) تا د ځوانمردۍ خبرے

په علاقه کښې مشهورے وے - - - - شهنشاه (د) د شاهانو شاه - - «کودوفاراسا»

د حرفِ اضافت نه بغیر مثالونه

دریم مثال :- احمد زویه شهزمانی بل

خنزاده زویه عالم وو - - - - - «مهاراجا براتا» دراميا سا ، «اسپالاهورا»

مطلب :- (د) احمد ځوی شهزاده

(او) خانزاده ځوی عالم وو - - - - - (د) شهنشاوړور - - - - اسپالاهورا

څلورم مثال :- براتم ځوی جمعدار وه

"اسپالاکا دلماسا" ---"اسپالا هورا پوترا سا" - - - - - - - - خدائے ورکړے برکت وو-
مطلب :- جمعدار (د) برائم ځوی
(د) "اسپالا هورا ځوی" "اسپالاکا داماسا" وو او خدائے لوئے برکت ورکړے وو-

د دے مثالونو نه مونږ ته په ګندهارا کښے د ساکا پهلوا باچایانو په مسکوکاتو باندے په خروشتی رسم الخط کښے لیکلی شوی یوے ژبے او د پښتو ژبے د تسبتًا یوے زړے نمونے ترمینځه د وینا او لیک هم آهنګی معلومیږی - د ساکا پهلوا په دوره کښے او د دے نه وروستو د کوشانیانو په زمانه کښے هم د ګندهارا او افغانستان په اکثرو حصوکښے د ساکا قبائیلو اولسی ژبے ویلے شوے - دلته که بیاد محقق او ژبپوهان بناغلی مارګن سهرن وینا ته پام اوکړو چه د هغے له مخه د دهٔ په خیال کښے پښتو ژبه د ساکا قبائیلو یوه اولسی ژبه معلومیږی - او بیا د اطالوی لیکوال جوسهن وینا هم را یاده کړو - چه د پارتیانو ژبه د میډی ژبے او سیتی قبائیلو د ژبو تر مینځ د اتصال کړئ وه - نو دا ویل به بے ځایه نهٔ وی چه د ساکا پهلوا قبائیلو ژبه به هم پښتو یا پښتو ته نزدو وه - او په دے خبره دلالت کوی چه دا قبائیل تر ډیرے مودے د پښتنو سره په ژور نزدو تعلقاتو کښے ګنډلی پاتے شوی دی - دا خبره هم د فکر وړده - چه په ګندهارا کښے د ساکا پهلوا قبائیلو د راتلو نه ډیره زمانه اګاهو مونږ په دے علاقه کښے د پښتنو د موجودګئ نه خبریو - نو ډیره اغلبه ده چه دا موجوده پښتو به د ساکا پهلوا او "پکتیانو" د اختلاط او آمیزش نه پیدا شوی وی-

# دکوشانیانو دوره

د ساکا پهلوانه پس په افغانستان، ګندهارا او د هند په شمال مغربي علاقو کښې دکوشانیانو حکومت شروع شو. کوشانیان څوک وو؟ په لنډه توګه دول د دے تفصیل داسے دے:-

**یوچي یا یوهچي:-** لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی - سیتی قبائیل په مختلفو قبائیلو کښې ویش وو - او چونکه دا قبائیل به اکثر خانه بدوش او په خپل مینځ کښے په جنګونو اخته وو - نو په دے وجه دوی ته ځلیف قبائیل نۀ شو وئیلے - په دے سیتی قبائیلو کښے څینے قبائیل د یوچي یا یوهچي په نامه مشهور وو.

د دویمے صدۍ ق - م د نیمے په حواوشا کښے دا یوچي قبائیل د یوے بلے قبیلے "هونګ نو[له]" د دباؤ او فشار په نتیجه کښے د خپلے علاقے نه په وتلو مجبور شول - او د صحرائے ګوبي په قطبي علاقو کښے خوارۀ شول - او د دے نه وروستو د زمانے په تیریدو د سیر دریا او رود آمو ترمینځه علاقه کښے استوګن شول - د ۱۳۵ ق - م پورے دا قبائیل د رود آمو په قطبي علاقو میشته وو - په دے زمانه کښے د رود آمو په جنوبي علاقو کښے یو قوم خلق او سیدل - د چینی لیکوالو مطابق هغوی د "تاهیا" په نامه مشهور وو - دا خلق (تاهیا) هسے په شمیر کښے ډیر وو - ولے بے بدو امن پسند او تجارت پیشه خلق وو - دغه وجه ده چه په لږه موده کښے یوهچي قبائیلو په دوی خپل اقتدار قائم کړو -

یوچي قبائیل د ۱۲۸ ق - م په حواوشا کښے د رود آمو نه را پورے وتل - او د باختر په علاقه کښے خپل اقتدار قائم کړو - دغه وخت دا قام (یوچي) په پنځو

---

له "هونګ نو" دا نوم چینی لیکوالو د هغه خانه بدوشو قبائیلو دپاره استعمال کړے دے کوم چه هیرودوټس د "ستهین" په نامه یادکړی دی.

لو یو قبیلو مشتمل وو ـ او هره یو قبیله د خپل سردار ماتحت وه ـ په دے قبائیلو کښے د یوے قبیلے نوم « کوی شانګ » وو ـ د دے قبیلے سردار رفته رفته په نورو څلورو قبیلو هم خپل اقتدار قائم کړو ـ او د « کوی شانګ » قبیلے مشر د دے ټولو قبائیلو بادشاه شو ـ او د دے بادشاهئ نوم د دے قبیلے د نوم په مناسبت کوی شانګ شو ـ چه وروستو په استعمال سره د « کوی شانګ » نه په « کوشان » مشهوره شوه ـ او د یوچي نوم د میڅ نه اووتلو ـ

د کوشانیانو د سلطنت په آغاز کښے د « کابل او کاپیسا » په علاقه کښے باختری یونانیان په « ساکستانا » او اراکوزیا کښے پهلوا او په ګندهارا او د اباسین په کڅئ کښے « ساکا » حکمران وو ـ د هغه د دباؤ او فشار په نتیجه کښے چه د شمال او جنوب قبلے د لورنه باختری یونانیانو محسوس کولو ـ د دوئ محدود حکومت د پهلوا په قبضه کښے راغے ـ او بیا د پهلوا بادشاه ګندو فارس » د جانشینو په وخت کښے کوشانیانو ته منتقل شو ـ

د کوشان خاندان بانی « کجولا کد فیزس » ګڼلے شی ـ په اغلبو احتمالاتو « کجولاکدفیزس » به د سنه ۵۰ ع په خوا او شا کښے د کابل او کاپیسا علاقه فتحه کړی وی ـ او د سنه ۶۰ ع پورے به ئے د ګندهارا علاقه د اباسیند د غربي غاړے پورے په خپل سلطنت کښے شامله کړی وی ـ او د دے نه پنځلس کاله پس د سنه ۶۵ ع په خوا و شا کښے د ټیکسلا د فصیل په خوا کښے هغه خونړے جنګ شوے دے چه د هغے په نتیجه کښے کجولا کد فیزس د شمالی هند هم مالک شو د دے جنګ فاتح به یا د کجولا کد فیزس ځوئے « د یما کد فیزس » وو او یا هغه بے نومه سپه سالار یا نائب السلطنت چه په مسکوکاتو کښے د « سوتر مګاس » یعنی « منجیٔ کبیر » په لفظ ذکر دے ـ

کجولا کد فیزس د اتیاؤ کالو په عمر کښے د (سنه ۷۸ ع) په خوا و شا کښے وفات شوے دے ـ د دهٔ مسکوکات د کابل د باختری یونانیانو د آخری باچا « هرما یوس » د مسکوکاتو په تقلید کښے ضرب شوی دی ـ د دهٔ د یوے سکے په یو مخ په خروشتی رسم الخط کښے د دهٔ نامه او القاب داسے لیک دی ـ

اصل عبارت :ـ کجولا کاسا سا « کوشانا » « یاووګاسا » « دهرماتی کاسا »

پښتو ترجمه :ـ کجولا کاسا (کد فیزس) کوشانی شاه دیندار محافظ دین

په یوه بله غونډه مسی سکه چه په شا باندے ئے د « بخدی » (بلخی) اوښ تصویر دے ـ په خروشتی رسم الخط کښے د دهٔ نوم او القاب داسے لیک دی :ـ

اصل عبارت :- «مهاراجاسا» «راجا راجاسا» «دوا پوتراسا» «کاجولا کاوا کافزاسا»
پښتو ترجمه :- شهنشاه شاه شاهان (د) آسمان ځوئے کجولا کدفیزس

**ویما (یا) کدفیزس :-** د کوشان خاندان دوم بادشاه د مسکوکاتو په شهادت ویما ویموکدفیزس دے[1] - دا باچا په تاریخونوکښے دکدفیزس دوم په نامه هم مشهور دے - او غالبًا چه په ۷۸ یا ۸۰ کښے دخپل پلار د وفات نه پس بادشاه شوے دے. په دے زمانه کښے د ایران پارتی حکومت د رومیانو سره په جنګونوکښے بوخت وو- د دے وضعیت نه کدفیزس دوم فائده واخسته - او د اوسنی افغانستان تقریبًا ټولے علاقے لکه آریا (هرات) «ساکستانا» (سیستان) اراکوزیا (د قندهار منطقه) وغیره ئے فتح کړے - او د هند په لور ئے هم د خپلو فتوحاتو لمن خوره کړه- مشهور انګلیسی مؤرخ «مسټر ونسنټ سمته» دکدفیزس دوم د هندی فتوحاتو په باب کښے داسے وائی «د دے خبرے احتمالات موجود دی- چه دے بادشاه به د پنجاب او دګنګا د میدان یوه یوه برخه فتح کړی وی - دا امکان هم شته چه دے به د ابا سیند تر دهانے هم رسیدلے وی - او په دے علاقوکښے چه د پارتیانوکوے ورے ورے راجواړے وے هغه به ئے د مینځه لرے کړی وی ؛ د اکثرو مورخینو په خیال کښے د شمال غربی هند ټولے علاقے د دهٔ په حکومت کښے شاملے وے - دا امکان هم کیدے شی چه متهرا به هم د دهٔ په حکومت کښے شامله وه[2]-

د «ویما کدفیزس» مسکوکات دکدفیزس اول د مسکوکاتو په نسبت زیات ښکلی او د نقش ونګار په لحاظ د فن په اصولو جوړ معلومیږی - او دا غالب امکان دے چه په مسکوکاتوکښے دا ترقی به دګندهارا د الحاق نتیجه وی - په دے مسکوکاتو باندے هم په یو مخ یونانی او په بل مخ خروشتی رسم الخط دے -لیکن د یو یونانی رسم الخط موجودګی هسے یو تقلیدی خبره ده - دغه وخت دا رسم الخط د عام استعمال نه وتلے وو- البته په مسکوکاتوکښے صرف د تقلید په ډول جاری وو- او بے د بادشاه د نوم القابونه به پکښے نور څه نهٔ شو لیکلے -

د ویما کدفیزس د سلطنت د مودے تعین په یقینی ډول نهٔ شی کیدے څنګه چه

---

[1] دا نامه چینی لیکوالو د (ین -کو - چن) (YEN - KO-CHEN) په لفظ ضبط کړی ده-
[2] د متهرے نه څوارلس میله لرے د «مات» نومے کلی نه د دهٔ مجسمه برآمد شوی ده.

د ده د سلطنت زمانه (۲۲) کاله او څنې ته (۲۰) کاله کني - ولې د وفات ئې سنه ئې.

ویماکډ فیزس د خپلو مسکوکاتو له مخه د «شیوا» پیرو معلومیږی - د ده په وخت کښې د سلطنت دولتمندی او هوسائې د سرو زرو د ښکلی مسکوکاتو نه څرګنده ده. د ده د یو سکې په یو مخ په خروشتي رسم الخط کښې د ده نوم او القاب داسې لیکلې شوی دی :-

اصل عبارت :- «مهاراجاسا» «راجاتی راجاسا» «سارو الوکا» «ایشوراسا» «ماهیسواراسا» هیماکپتی شاسا،

پښتو ترجمه :- شهنشاه ، شاه شاهان د دنیا بادار د شیوا پیروکار هیماکپتی شاسا (ویماکډ فیزس)

د ویماکډ فیزس او کنشکا د تخت نشینۍ ترمینځه زمانه کښې د یو داسې بادشاه مسکوکات موندلې شي چه نامه ئې څرګنده نه ده - او په مسکوکاتو باندې ئې په یونانی رسم الخط کښې د «سوترمګاس» لفظ لیکلې دې - د دې لفظ معنیٰ «لوئې نجات ورکوونکې» کیږی - د دې سړی په حقله د مورخینو خیالات او قیاسات مختلف دی - ولې په غالب ګمان دا سړې به د ویماکډ فیزس دلوری نه نائب الحکومت وو - او د کوشانی باچا په هندی مقبوضاتو بإندې ئې حکومت کولو - او د سکې وهلو حق به ورله حاصل وو - د دې قیاس مرسته د دې نه هم کیږی - چه د «ساکا پهلوا» په دوره کښې هم داسې رواج وو - او د شهنشاه سپه سالار یا وړور یا بل قریبي رشته دار ته به د نیابت په حالت کښې هم د خپلې نامې د سکې ضرب کولو حق حاصل وو - لکه چه داسې مثالونه موږ د دې باچایانو په دوره کښې لیدلی دی.

«سوترمګاس» مسکوکات په تانبه او سپینو زرو کښې یواځې دا نه چه په مرکزی هند کښې د مالوې او بنارس تر علاقې پیدا شوی دی - بلکه د بګرام (کاپیسا) په علاقه کښې هم پریوانه موندلی شوی دی - دا مسکومات اګرچه پریوانه دی ولې قریباً قریباً تول په یو دول او څه خاص جدت نه لری.

**کنشکا :-** د ویماکډ فیزس نه پس چه په کوشانی خاندان کښې کوم سړې حکومت ته رسیدلې دې هغه په کتباتو او مسکوکاتو کښې د کنشکا په نوم یادیږی - دغه بادشاه د «شاه ګندهارا» لقب مشهور او په خپلو مسکوکاتو کښې د «راؤ نانو راو» یا شاو نانو شاو یعنې د بادشاهانو بادشاه بللې شوې دې.

د کوشانیانو د تاریخ په حقله عموماً او د کنشک د شخصیت په حقله خصوصاً دا

یوه ډیره عجیبه خبره ده ـ چه سره د دوی د دے لوئے دبدبے او شهرت چه ترڅوڅو پیړیو په مرکزی آسیا کښے خور وو ـ د زرګونو مسکوکاتو او پریوانه کتباتو په موجوده کښے چه تقریبًا د هغه د ټول سلطنت دوره ئے راګیره کړی وه . با وجود د سنسکرت، چینی او تبتی ژبو د پخوانی نوشتو او لیکونو او سره د هغه قدآدم بے سره مجسمے[1] چه دده د القابو او خطابونو سره د متهرے د خواوشا نه پیدا شوی ده . بیا هم د کنشک د جلوس تاریخ نامعلوم دے ـ او دا خبره په واضح ډول لا نهٔ ده معلومه چه کنشکا په کوم وخت او کوم شکل کښے تخت ته رسیدلے دے . البته د مؤرخینو د غالب اکثریت په خیال کښے د دهٔ د تخت نشینئ زمانه د سنه ۱۲۰/۱۳۰ ع په مینځ مینځ کښے او په اکثرو احتمالاتو په سنه ۱۲۸ ع کښے ګڼلے شی ـ

کنشک د شاه ګندهارا په لقب مشهور وو ـ او په دے وجه د دهٔ سلطنت ته به د ګندهارا سلطنت هم او ویلے شو ـ د دهٔ په سلطنت کښے ټول افغانستان، ګندهارا، شمالی هند ( د ګنګا تر میدانونو ) او په سویل د وندهیا چل تر غرونو، د قبلے په لور د پامیر نه په قبله د سنکیانګ او رود ځارم ترکځئ پورے خور وو ـ د دهٔ په سلطنت کښے د پارتیا، ختن یارقند، کشمیر، ګجرات او کاتهیا واړ غوندے صوبے هم شاملے وے او د دے وسیع سلطنت صدرمقام په ګندهارا کښے پوراشاپورا (پېښور) وو ـ

کنشکا به د خپل وسیع سلطنت انتظام د دوو دارالخلافو نه کولو ـ د دهٔ ګرمائی صدرمقام د کاپیسا ښار وو ـ پوراشاپورا (پېښور) د دهٔ سرمائی دارالخلافه وه ـ دا ښار اګرچه د نورو کوشانی بادشاهانو په عهد کښے هم مشهور وو ـ ولے د کنشک په وخت کښے د شهرت انتها ته رسیدلے وو ـ د دهٔ په زمانه کښے دا ښار د ګندهارا آرټ او بودائی تعلیماتو یو لوئے مرکز وو ـ اګرچه د حفریاتو په نتیجه کښے د پېښور د زړوکنډوالو نه څهٔ داسے ډیر څیزونه نهٔ دی راوتلی ـ چه د هغے نه د دے ښار د پخوانی عظمت او شان وشوکت پوره پوره اندازه اوشی ـ بیا هم د شاهی آبادیانو په لړکے په ډکنشکا

---

[1] د کنشک دا قدآدم بے سره مجسمه چه په خپل وطنی لباس کښے ملبوس ده . او د فن کارئ یوه بے نظیره نمونه ګڼلے شی ـ د مات نو مے کلی نه چه د متهرے نه څوارلس میله لرے دے راوتلی ده ـ د دے مجسمے سره د ویماکه فیزس او د .. چیشتانا .. مجسمے هم دی ـ چیشتانا هغه سړے دے چه د .. ساکاپهلو .. باچاهانو په لړکښے ذکرشوے دے ـ د کنشک او ویماکد فیزس یو ځائے مجسمے د دواړو بادشاهانو د عهد نزدیکت څرګند وی ..

دسرمائی صدر مقام اهمیت پر زیات لري. ددغه شاندار معبد ذکر ضروري دے. چه چینی سیاح "فاهیان" ددغې ذکر په ډیرو شاندارو الفاظو کښے کړے دے. د دے معبد مینار دڅلورو سوو فټو نه زیات لوړ او دمنقش لرګی نه جوړ په دیارلس منزله مشتمل وو. دا معبد د دغه وخت په ټوله دنیا کښے د ټولو نه زیات ښکلے او عظیم معبد ګڼلے شو. او تر ډیرے مودے د دنیا د سیاحانو د توجه مرکز وو. داخانقاه یا معبد دموجوده پیښور دګنج دروازے نه بهر په دغه ځائے آباد وو چه اوس د "شاه جي" په ډیرئ یا ډیرئ.

د سنه ۱۹۰۹ء د حفریاتو په نتیجه کښے د دے خانقاه بنیاد معلوم شوے وو. چه دوه سوه او شپږ اتیا (۲۸۶) فټه محیط ئے لرلو. ددے نه ددے عمارت د عظمت اندازه لګیدلے شي. دا ہم معلومیږي چه په دغه وخت کښے په ټول هندو پاکستان کښے دومره عظیم عمارت بل چرته نه وو. د حفریاتو په دوران کښے په دے ځائے کښے یو ښکلے صندوقچه هم موندلی شوی وه. چه په هغې کښے دمهاتمابده څه تبرکات وو. په دے صندوقچه دکنشکا تصویر موجود دے. او مهرئے هم پرِ لګیدلے وو. پا صندوقچه باندے د "اجي سالا" نوے یو سړی دستخط هم څرګندیږي. دا نوم یوناني شان معلومیږي. اغلبه ده چه دا سړے به دکنشکا د عمارتونو مهتمم یا اوورسیئر وو. دا صندوقچه نن ورځ د پیښور په عجائب خانه کښے د قدیم تاریخ د یوے نادرے تحفې په ډول محفوظه ده. او په صندوقچه کښے د "بده تبرکات" د "برهما" حکومت ته د پاکستان د لوری نه د خیر سګالئ دجذبے زیر اثر ورکړے شوی دی.

د پیښور دا معبد لکه چه مستر ونسنټ سمتهه وائی د شپږمے صدئ عیسوی په آغاز کښے د چیني زائر سنګ ین (سنه ۵۲۰ء) د وینا مطابق چه په دغه زمانه کښے ګندهارا ته راغلے وو. لا هم دغه شان په خپل زور شان و شوکت آباد وو. او د دے چیني زائر په قول تردے وخته درے ځله په اور سوزیدلے او خراب شوے وو. ولے دوباره بیا دغه وخت د بادشاهانو له خوا تعمیر شوے وو. په دے ډول دکنشک په وخت کښے په دے ښار کښے د بودائی تعلیماتو د پاره یوه عظیمه جامعه یا خانقاه هم اباده وه. دا خانقاه نهمے صدی مسیحی پورے لا آباده وه. او ممتاز بودائی عالم "ویرادیوا" لیدلی وه.

**دین وآئین:**- کوشانیان دخپلے بادیه ګردئ په زمانه کښے دڅه خاص دین و آئین پیروکار نه وو. ولے کوم وخت چه دوی د تهذیب په دائره کښے داخل شول او حکومت ئے تشکیل کړو. دغه وخت دوی د زردشتي مذهب پیرو معلومیږي. ولے هرکله

چه د خپلو فتوحاتو په سلسله کښې افغانستان ګندهارا، وادئ سند ته او ګنګا ته اورسيدل نو د مختلفو مذاهبو نه د تاثر په نتيجه کښې دوی د مفتوحه ملکونو ټول ارباب الانواع محترم اوګڼل. اګرچه د کډ فيزس اول د يو خاص مذهب په حقله څه څرګند ثبوت نشته. ولې په مسکوکاتو باندې د هغهٔ د لقب «شاه ديدار» نه دا څرګنديږی چه هغهٔ به هم ټولو ارباب الانواعو ته په درنه سترګه کتل. دا خبره هم د فکرورړ ده. چه د هغهٔ ځوئ کډ فيزس دويم د «شيوا» پرستش ته مائل ښکاری. او د څنې عالمانو په خيال کښې د هند د فتوحاتو نه پس هغهٔ د «شيوا» پيرو شوې دې.

دکوشانيانو د حکومت په ابتدا کښې په ملک کښې بودائی او اوستائی دينونه دواړه مروج وو. اګرچه زردشتی آئين څه د دوو صديونه د ملک خاتيزې حصې د بودائی آئين د پاره خالی کړې دې. او د «بدها» فلسفه په دې مزکه خوره شوی ده. ځکه چه د اشوک ذ مذهبي شغف په نتيجه کښې بده مذهب د ګندهارا په علاقه کښې خور شوې او د هندوکش ترجنوبي لمنو پورې رسيدلے وو. کوشانيان هم د دې دين سره متعارف شول. د کاپيسا د کنډوالو نه څنې داسې آثار برآمد شوی دی چه د هغ نه د کوشانيانو بده مذهب ته د راوړيدلو قياس مرسته موی. دا خبره هم د تعجب ده چه د کنشک د زمانے کتبات او د هغهٔ مسکوکات د بده مذهب سره د هغهٔ عقيدت او احترام او مينه څرګندوی.

ولې دا خبره لا تراوسه ثبوت ته نهٔ ده رسيدلی چه کنشکا به هم د «اشوکا» په شان بده مذهب قبول کړې وی. اګرچه ډير قرائن په دې خبره دلالت کوی چه کنشکا د خپل سلطنت په آخری کالونو کښې بده مذهب ته مائيل وو. د کنشکا په مسکوکاتو کښې د نورو ارباب الانواعو په شان په يو سکه «ګوتم بده» هم د ديوتا په ډول مضروب دې. به هرحال دومره خبره يقيني ده چه د خپل سلطنت په آخری کالونو کښې کنشکا د بده مذهب يو سرګرم مرستيال وو.

د اشوکا په زمانه کښې بده مذهب يو خاص مذهب نهٔ وو بلکه د ژوند يوه خاصه فلسفه وه. ګوتم بده يو «ديوتا» نه بلکه يو اخلاقي معلّم او مصلح وو. چه د خپلې نوی فلسفې او اخلاقي اصولو په رڼا کښې ئے خلقو ته د ژوندانهٔ د غمونو نه د خلاصی او د فيروانا ر د ژوند آخری سکون او نجات ) لاره ښښيله. خيالات، جذبات، احساسات،

او افعال پاک ساتل او په دغه ډول یو څو نور اخلاقي اصول د هغهٔ د تعلیم خلاصه ده - د شهباز ګړهي کتبه چه د اشوک فرامین پرې لیک دی - د دې خبرې مرسته کوي.

ولې د بدهه مذهب په تاریخ کښې د کنشکا نوم په دې وجه هم قابل احترام ګڼلې شي - چه هغه د اشوکا په شان د بدهه مذهب د تعلیماتو د آئوین د پاره د بو دائي مذهب د مشهورو او لویو لویو عالمانو یو مجلس مقرر کړو او د دې مجلس د فیصلو په نتیجه کښې بدهه مذهب یو نوې شکل اختیار کړو -

د کنشک تر زمانې چه بدهه مذهب په کومه طریقه وو - هغه طریقه ته به ئې ,, هینایانا ،، (HINYANA) یعنی د نجات لنډه لاروئیله - د دې طریقې اصول او آئین په هغه مذهبي مجلس کښې مدوّن شوی وو - کوم چه د اشوکا د حکومت په وخت کښې د پاټلی پوترا (پټنه) په مقام منعقد شوې وو - وروستو چه دغه دین په ګنده هارا او افغانستان کښې خور شو - نو د زمانې په تیریدو سره ګنده هارا د عالمانو له خوا په دې اصولو کښې د تبدیلیو تحریک شروع شو - او چه د کنشکا دوره راغله نو په دغه وخت کښې د دې د مرستې له کبله ګنده هاری عالمانو ته دا موقع په لاس ورغله چه خپلو نظریاتو ته عملی شکل ورکړي - چنانچه د کنشکا په حکم د هغهٔ په سرمائي دارالخلافه (پیښور) او یا په کشمیر کښې د بدهه مذهب په اصولو باندې د غور کولو په غرض یو لوئې مجلس منعقد شو - چه پکښې پنځه سوه د بدهه مذهب مشهور او نومیالی عالمان شامل شوی وو -

دا مجلس د واسو میترا (VASO METHRA) نوې یو عالم چه د ګنده هارا او سیدونکے او په مذهبي علومو او فلسفه کښې د کوشان په ټول سلطنت کښې ئې سارے نه وو - د صدارت لاندې منعقد شو - یو بل عالم چه نامه ئې ,, پارسوا ،، او د ګنده هارا باشندہ او د کنشک درباری او مذهبي مشاور وو - او د بادشاه سره به هر وخت په پیښور او کشمیر کښې موجود وو - او مذهبي تعلیم به ئې ورکولو - په دې مجلس کښې هم شامل وو - د دې مجلس فیصلې د ,, اسواکوسا ،، نوې یو ادیب چه د کنشکا د زمانې یو لوئې بهترین لیکوال، لوئې ادیب، ډراما نویس، شاعر فلسفي او د ډیرو کتابونو مصنف وو - په قلم او لیکلې شوې - دغه مجلس د بحث مباحثې نه پس د موریا د زمانې محدود بودائي آئین په وسیع ترین مفهوم کښې قبول کړو - او د دې مکتب ژبه ئې سنسکرت

اوکړزوله[ل] - د دے مکتب یالارے نامه د زړے لارے په مقابله کښے « مهایانا » (MAHAYANA) یعنی د نجات لویه لار کیښېږودلے شوه - چونکه د نوی طریقے، یالارے محرکین دګندهارا عالمان وو - نو د زړے لارے په مقابله کښے د دے نامه شمالی لاره هم شوه - د دے نوی لارے د محرکینو د دے اقداماتو او اصلاحاتو په خلاف د جنوب د لارے بودائی عالمانو ډیره غوغا پورته کړه او د دوی دے نظریاتو ته ئے باطل اوویل.
د دے مجلس د صدر « واسو میترا » نامه ئے د بودائی عالمانو د فهرست نه اووهله.
د دے نه پس به دوه مذهبی نظرئے په دوه مختلفو شکلونو کښے اجرا کیدلے - او د دواړو ډلو اختلافات دومره زیات شول چه د هرے یوے ډلے لارے « پیروانو » خپل مذهبی معابد او مذهبی حلقے بیلے کړے -

**ګندهارا آرټ :-** د دے مجلس د فیصلے په نتیجه کښے په ګندهارا کښے د بده مذهب رخ بیخی بدل شو - ګوتم بده چه په زړه لاره کښے د یو مصلح او اخلاقی معلم حیثیت لرلو - او د ده مریدانو به د ده د بُت جوړولو نه پرهیز کولو - په ګندهارا کښے ئے اوس د « دیوتا » درجه اختیار کړه - او د هغهٔ ژوند او د ژوند اوږده قیصه د بتانو ژبه په ژبه ګویا نهٔ شوه - د ساکیا مونی (ګوتم بده) د پیدا کیدو آثار، د هغهٔ پیدائش، د دیوتا کیدو علامه، د جوګی کیدو تګل، د هغهٔ ریاضت او فاقه کشی د شاګردانو تولی، د هغهٔ وړومبے تقریر، د نروانا فکر، « د هغهٔ مرګ » حتیٰ چه د هغهٔ د ژوند وړے لوئے په سوونو تولے حادثے، فنکارانو د بتانو په ژبه بیان کړے - او د بتانو په ژبه دګوتم بده د ژوند دا اوږده قیصه د « ګندهارا آرټ » په نامه مشهوره شوه -

څنے عالمان دګندهارا آرټ د پیدائش او ترقئ باعث دګندهارا په علاقه د باختری یونانیانو سل کلیز دور حکومت ګنی - او دا سے وائی چه « که باختری یونانیانو په دے علاقه حکومت نهٔ وے کړے نو شاید چه ګندهارا آرټ به هم معرض وجود ته نهٔ وو راغلے » دا خبره تر دومره حده درسته ده چه د باختری یونانیانو د سلطنت د تنزل په وخت کښے یونانی فنکاران چه د هغوی فنی کمالات د باختری یونانیانو

---

[ل] د اشوک په زمانه کښے د بده مذهب مذهبی ژبه « پالی » ژبه وه - چه په برهمی او خروشتی رسم الخط کښے به لیکلے شوه -

په مسکوکاتو کښې لا تر اوسه ژوندي دي. د هندوکش جنوبي علاقو ته په کوچ او مهاجرت اماده شول. او بيا د «ساکا پهلوا» او «يوچيانو» د حملو په نتيجه کښې دغه خلق په زيات تعداد کښې په مهاجرت مجبور شول. او گندهارا ته راغلل. د گندهارا زمکې د خپل طبعي محل وقوع او قدرتي خصوصياتو له کبله د وړومبۍ صدۍ ق-م نه د بودائي آئين د نشو و نما په حقله د «ارض موعود» حيثيت حاصل کړے وو. نو هر کله چه د عقيدے حرارت او جوش د سکون واطمينان په فضا کښې د مهارت فن او ذوق لطيف سره قريبي او يو اوږد تماس پيدا کړو. نو «گندهارا آرټ» د پاره زمکه تياره شوه. او دغ صنعت يعنی د سنگي هيکل تراشۍ د پاره موزون او سازگار حالات پيدا شول. چنانچه د سوات او پشکلاوتي (چارسده) د کنډوالونه د «بدها» دوه داسے مجسمے برآمد شوي دي چه د فرانسيسي ماهر آثار قديمه «مسټر فوشه» د تحقيق مطابق د يوے تاريخ سنہ ق-م او د بلے تاريخ (سنہ ۳۶ ق-م) ټهل پکار دی. او داد باختري يونانيانو دور حکومت وو. په دے بنا داوئيلے شو چه د گندهارا آرټ بنياد د باختري يونانيانو په عهد کښې اېښودے شوے دے.

ليکن د دے خبرے نه هم انکار نۀ شي کيدے چه د گندهارا آرټ د عروج او ترقۍ زمانه د کنشکا دورحکومت وو. کوم عوامل چه د دے ترقۍ ذمه وار دي دغه به په لنډ ډول داسے بيان کړو.

(۱) د کوشانيانو او روميانو تر مينځه د تجارتي او سياسي روابطو قيام.

(۲) د کنشکا د لوري نه د بدهه مذهب سرپرستي او په مذهبي عمراناتو کښې دغه حد په صورت ته شغف او دلچسپي.

(۳) د کنشکا د لوري نه د فن قدرداني او د هغ په نتيجه کښې د يوناني او رومن صناعاتو راتلل. او د دوی په وجه د مقامي صنعتگرانو تربيت او نشوونما. او د دے باهمي تأثر او اختلاط په نتيجه کښې د مغربي خيالاتو په مشرقي دنيا کښې جذب کيدل.

غرض دغه عوامل دي چه په بنيادي طور د گندهارا آرټ د ترقۍ او عروج اسباب گڼلے شي. دا عوامل د کنشکا د مقتدر شخصيت، د مذهب سره د هغۀ د شغف، د صنائع لطيفه په باب کښې د هغۀ د قدر دانۍ او د هغۀ په وسيع سلطنت کښې په امن و امان دلالت کوي. دغه اسباب چه د گندهارا په خيال انگيزه خطه کښې ټول

سره یوځائے شول نو دکنشکا په سرپرستۍ کښې دګندهارا دهیکل تراشۍ صنعت دعروج انتها ته اورسیدلو۔ او نه صرف دګندهارا دشهرت باعث شو بلکه دکنشکا نوم پرے هم ژوندے پاتے شو۔

**دکنشکا مسکوکات :۔** دکنشکا دزمانے مسکوکات پریوانه موندلے شوی دی۔ او دے نه دده دسلطنت وسعت معلومیږی۔ دا مسکوکات دکوشان دوړاندینی بادشاهانو دمسکوکاتو په نسبت څنے امتیازی خصوصیات هم لری۔ دکنشکا دزمانے نه وړاندے دمسکوکاتو په یو مخ یونانی ژبه او یونانی رسم الخط او په بل مخ اولسی ژبه په خروشتی رسم الخط کښې په باقاعدګۍ سره استعمال شوی دی۔ ولے دکنشکا په مسکوکاتو کښې یونانی ژبه دا استعمال نه وتلی ده۔ اګرچه یونانی رسم الخط پرِ باقی دے۔ دا هم د تعجب خبره ده۔ چه دده په مسکوکاتو کښې خروشتی رسم الخط نۀ دے استعمال شوے۔ البته په کتباتو کښې دا رسم الخط جاری وو۔ دکنشکا په مسکوکاتو کښې چه کومه اولسی ژبه استعمال شوی ده۔ دهغې شناخت هم نۀ دے شوے۔ په دے مسکوکاتو کښې چه په کومه لهجه کښې کوم الفاظ لیکلے شوی دی دهغه دا سے دی :۔

اصل عبارت :۔ "شاو" او نانو " شااو " کنشکے کوشانو" په دے الفاظو کښې که "شا او" نه مراد شاه شی نو د ټولو الفاظو مطلب به داسے شی۔

پښتو ترجمه :۔ شاه شاهان کنشکا کوشانی "

دکنشکا په مسکوکاتو کښې د ارباب الانواعو تنوع هم زیات دے۔ او په دے باب کښې دا بادشاه دخپلو متقدمینو نه ممتاز دے۔ دده اکثر مسکوکات مسی او یا مخلوط دی۔ دویما کدفیزس په نسبت دده طلائی مسکوکات هم زیات موندلے شوی دی۔ دامسکوکات په شکل کښې اکثر غونډ دی۔ د سکے په یو مخ د بادشاه او په بل مخ ئے په ملکی ارباب الانواعو کښې د یورپ النوع تصویروی۔ دا ارباب الانواع خواکه اوستائی دی اوکه یونانی یا هندی بے دهغۀ امتیاز نه په مسکوکاتو کښې نقش شوی دی۔

**دکنشکا جانشین :۔** دکنشکا دوفات کال ۱۵۱ء کیڼلے شی۔ کنشکا دکوشانی خاندان یو لوئے او مقتدر حکمران وو۔ ولے په تاریخ کښې د هغۀ دشهرت باعث نه دهغۀ فتوحات دی او نۀ د هغۀ وسیع سلطنت بلکه په کومو وجوهاتو چه دهغۀ نوم ژوندے پاتے شوے دے ، د هغۀ د بودائی مذهب سره دهغۀ مرسته او دګندهارا آرټ

سرپرستی ده۔

داخبره په وثوق سره نهٔ ده معلومه چه دکنشکا نه پس د هغهٔ جانشین څوک شو۔ ددے خاندان د نوروکومو بادشاهانو نومونه چه د مسکوکاتو په شهادت معلوم دی هغه «واسشکا» «کنشکا» «دوم» «هویشکا» او «واسو دیوا» دے۔ دځنے عالمانو په خیال واشکا دکنشکا ځوئے وو۔ ددے بادشاه نامه په هغه کتبه کښی چه تاریخ ئے کال (۲۴) دے او د متهرے نه راوتلی ده۔ او په دوه نوروکتباتو کښے چه تاریخونه ئے کال (۲۸) او (۲۹) دی ذکرشوی ده۔ ولے ددهٔ د نامے مسکوکات نهٔ دی موندلے شوی۔ او دا سے معلومیږی چه د تخت نشینئ نه پس به ژر مړ شوے وی۔ په ځنے کتباتو د دهٔ نامه «واجشکا» هم راغلی ده۔

**کنشکا دوم** :- د عالمانو په خیال کښے دا دکنشک اول نمسے دے۔ د پنجاب د ارا (ARA) نومے مقام نه چه کومه کتبه د خروشتی رسم الخط برآمد شوی ده۔ د هغې نه ددے تصدیق کیږی۔ په دے کتبه ددے بادشاه نوم او القاب داسے ذکر دی =۔

اصل عبارت :- "مهاراجا راجاتی راجاسا دوا پوترا کیزارا واجشکا پوترا کانیشکا"

پښتوترجمه :- شهنشاه شاه شاهان (د) آسمان ځوئے قیصر (د) راجشکا ځوئے کانیشکا

**هویشکا** :- دکنشک اول نه پس په کوشانی خاندان کښے دا بادشاه د نورو په نسبت زیات معروف دے۔ د افغانستان د «وردک» نه چه دخروشتی رسم الخط کومه کتبه برآمد شوی ده۔ په هغې کښے دے د شهنشاه په لقب یاد شوے دے۔ د «کاپیسا» په کنډوالو کښے د دهٔ مسکوکات پریوانه موندلی شوی دی۔ د مسټر «نسټ سمته» په عقیده کښے د دهٔ حکومت د کابل نه ترکشمیر او متهرے پورے خور وو۔ د هویشکا په زمانه کښے متهرے هغه حیثیت موندلے وو کوم چه دکنشک اول په زمانه کښے پیښور ته حاصل وو۔

**واسو دیوا** :- دکوشانی خاندان د بادشاهانو په سلسله کښے دا آخری باچا ګڼلے شی۔ ددے باچا نامه خالصه هندی معلومیږی۔ او د لفظ «ویشنو» سره ډیر نزدیکت لری۔ ممکنه ده چه دا نوم به په اصل کښے واسوشکا وو۔ په غالب ګمان دے د ۱۸۲ء په حدواوشا کښے بادشاه شوے دے۔ د دهٔ د زمانے کتبات اکثر د متهرے د حو اوشا نه برآمد شوی دی۔ ددے بادشاه په اکثر مسکوکاتو د شیوا تصویر دے۔ او د ایرانی ارباب الانواعو تصاویرے په مسکوکاتو کښے کم دی۔

او داسې معلومیږي چه د خپل سلطنت د مغربي صوبو سره د ده تعلق کم شوے دے۔

دکنشکا او د هغهٔ د جانشینو په زمانه کښې دکوشانیانو په وسیع سلطنت کښې دکتباتو او مسکوکاتو له مخه د بدهه مذهب اثر زیات معلومیږي۔ ولے د دے خاندان دآخری بادشاه "واسو دیوا" د نوم نه دا خبره څرګندیږي۔ چه د دهٔ په وخت کښې به په کوشاني دربار کښې د بدهه مذهب اثر مخ په زوال وو۔ او دا هم امکان لري چه دے بادشاه به برهمني مذهب قبول کړے وي۔ د بدهه مذهب په شان یو مذهب چه د عدم تشدد او نفس کُشي په تعلیما تو مبني دے۔ دکوشانیانو په شان دیو زیک او جنګي قام د جذباتو د تسکین او د معنوي د قوت ضامن نشوکیدلے. په دے بِنا ډیره اغلبه ده چه دکوشاني خاندان آخري معلوم بادشاه (واسو دیوا) به د سلطنت د استحکام په عزض برهمني مذهب اختیارکړے وي۔ اوکه چرے دهٔ داسے کړي هم وي نو د دهٔ دا اقدام به په دے وجه نتیجه خیز شوے نهٔ وي چه دا ډیرے وخته وو۔ په دے کښې هیڅ شک نشته چه بدهه مذهب څه رنګ چه وروستو د موریا خاندان د زوال باعث ګرځیدلے وو۔ هم دغه شان په دریمه صدئ مسیحي کښې دکوشاني خاندان د فوځي طاقت او شان و شوکت د زوال او ناکامیئ هم باعث شو۔

د "واسو دیوا" د حکومت په آخري زمانه کښې دکوشانیانو عظیم الشانه سلطنت مخ په زوال روان وو۔ د دوییمے صدئ مسیحي په اخري کالونو کښې دکوشان خاندان د غلورو رباستونو په حقله اشارے موندلے شي۔ دا د دے خبرے غمازي کوي چه دکوشاني خاندان مرکزي طاقت کمزورے شوے وو۔ اګرچه دا ممکنه ده چه د "پسر آسمان" دا اقتدار اعتراف به همسے په نوم دے غلورو واړو ریاستونوکولو۔ په مغربي علاقوکښې دکوشاني خاندان د زوال یولوئ باعث په ایران کښې دساساني خاندان عروج هم وو۔ په وادئ جمنا کښې کوشاني ریاست د "ناګا" کورنئ دلاسه ختم شو۔

واسو دیوا غالبًا چه په ۲۲۵ء کښې وفات شو۔ او د دے نه پس دا باسیند نه قبله ټوله علاقه رفته رفته د ایران د ساساني حکومت په قبضه کښې راغله۔

# دکوشانیانو دَدوُرے اهمیت

دکوشانیانو دوره بالخصوص دکنشک اعظم زمانه دګندهارا په تاریخ کښې ډیره اهمیت لرونکې شي - د ټکیسلا د تباهۍ (چه دکوشانی عهد په آغاز کښې شوی وه) نه پس دګندهارا سیاسي اهمیت نور هم زیات شو- دکنشک په زمانه کښې دے علاقے په سیاسي ، تجارتي ، تهذیبي او ثقافتي نقطۂ لحاظ سره ډیر اهمیت حاصل کړو- دګندهارا سره دکنشک ډیره مینه وه - دغه وجه ده چه کنشک به دشاه ګندهارا په لقب یادیدلو-او ددۀ وسیع سلطنت د سلطنت ګندهارا په نوم مشهور وو- پېښور د ددے وسیع سلطنت صدر مقام وو - او دبودائي دین وآئین یو لوئے علمي او تهذیبي مرکز وو- دهغۀ شاندار معبد (چه ذکرئے وړاندے شوے دے) نه علاوه دګندهارا په مختلفو ځایونو کښې پنځلس سوه نور هم بودائي معابد آباد وو - او دګندهارا هر ګوټ او هرے علاقے په د ....ساکیامونی ... دژوند دمظاهرو نه ډک داستانونه لرل -

اګرچه دکوشانیانو په زمانه کښې دکوه هندوکش په دواړو غاړو د مختلفو ارباب الانواعو پرستش کیدلو - او دکنشکا په مسکوکاتو کښې د سلطنت دټولواستوګنو دارباب الانواعو تصویرونه لیدلے شي- ولے بیا هم په اصل کښې د زردشتي آئین (چه دملک پخوانے مذهب وو) او دبودائي آئین تر مینځه مقابله جاري وه-

او بودائي آئین د قندهار ترمزکے بلکه د بلخ تر ښیے مشرقي حمے پورے خور شوے وو- او زردشتي آئین په مغربي علاقه کښې محدود شوے وو- یا داسے به اووایو چه دکنشکا په عهدحکومت کښې بودائي آئین په نورو ټولو مذاهبو فوقیت حاصل کړے وو - په دغه زمانه کښې په بدهٔ مذهب کښې ډیرے بنیادي تبدیلۍ شوے وے- او مهایانا (د نجات لویه لار) هم په دغه زمانه کښې مروج شوې وه- دکنشکا د فتوحاتو او د بودائي مبلغینو د تبلیغي کوششونو په نتیجه کښې بودائي آئین د پامیر د مشرق نه پورے وتو- او دچین ملک ته هم اورسیدو-

دکنشک په زمانه کښې با لخصوص په ګندهارا او مشرقي افغانستان کښې په سوونو بودائي معابد آباد وو. په دے معبدونو کښې به راهبین او مذهبي عالمان په درس و تدریس او مذهبي علومو دکتابونو په تالیف او ترجمو کښې لګیا وو. اګر چه داسے عالمان د سلطنت په هره حصه کښې موجود وو. لیکن ګندهارا چونکه دسلطنت مرکز وو. او د مذهبي علومو او صنائعو مرکزیت ئے هم لرلو. په دے بنا دکنشک د زمانے اکثر نومیالی او متبحر عالمان او مبلغین دګندهارا استوګن او د دے ځائے خلق وو. د "وازو میترا" او "پارسوا" نوے ګندهاری عالمانو ذکر د بودائي آئین د اصلاحي مجلس دانعقاد په لړ کښې شوے دے. د دوی نه علاوه دوه نور عالمان چه دیو نوم ماتانګا (MATANGA) او د بل نامه ګوبهارانا (GOBHARANA) وه. دخپل علمي تبحر له مخه د ډیر شهرت خاوندان وو. دغه شان "سنګ هوئي" (SANG HEUCI) چه دیو ګندهاری سوداګر ځوئے او "دهارماکالا" (DHAR MAKALA) یو بل پښتون عالم دخپلو تصانیفو او ترجمو له مخه ډیر نومیالی او دکمال خاوندان ګڼلے شول. "ګوناوارمن" نوے یو بل عالم چه په اصل کښې د "کاپیسا" د شاهي خاندان یو غړے وو. او په ګندهارا کښې استوګن شوے وو. دکوه هندوکش په جنوبي علاقو کښې په نومیالی عالمانو کښې حسابیدو.

د بودائي مبلغینو او راهبانو (چه اکثر دګندهارا خلق وو) د تبلیغي کوششونو او سرګرمیو په نتیجه کښې بدهه مذهب د زیړ نسل په خلقو کښې هم خورشو. او هرکله چه دا نوے مذهب په دے خلقو کښې خور شو نو بیا د دے نوی مذهب سره دعقیدت او احترام او د تحقیق و تجسس د جذبے لاندے دچیني زائرینو او عالمانو لخوا دبودائي مذهب د مقدسو مقاماتو د زیارت او د "بدها" د تبرکاتو جمع کولو په غرض د افغانستان اوګندهارا او د هند په لور د ټګ راتګ یوه سلسله شروع شوه. چه دظهور اسلام پورے جاری وه.

# دکوشانیانو او رومن سلطنت

## تجارتی او سیاسی تعلقات

دکوشانیانو بالخصوص دکنشک اول په زمانه کښې د هغهٔ په وسیع سلطنت کښې دامن وامان دوره وه. او د دے په نتیجه کښې د ټول مملکت بالخصوص دکندهارا اقتصادی او تجارتی وضعیت ډیر ښهٔ وو. دکوشانیانو او رومیانو سیاسی مفاداتو دا تقاضا وه چه د دواړو سلطنتونو ترمینځ دِ دوستانه تعلقات موجود وی. او د دے خبرے شهادتونه موجود دی چه د رومی شهنشاه تراجن (۹۸-۱۱۷ء) په دربار کښې چه کوم هندی سفیران حاضر شوی وو چه په اکثر احتمالاتو دکوشانی دربار سفیران وو. ولے دا په یقین سره وئیل گران دی چه دا به د ویماکد فیزس د دربار نه تلی وو. او که دکنشک د دربار نه. دکوشانی سلطنت جغرافیائی وضعیت داسے وو چه د هغه وخت ټولے تجارتی شاهراګانے د دوی په سلطنت کښې واقع وے. د تجارت یوه لویه لار هغه وه چه د باختر، سغدیانے او فرغانے نه به چین ته تله. بله لار د باختر او بامیان. نه دکابل په دره هند ته راوتلی وه. د دے دوؤ شاهراګانو نه علاوه د چین سره به دکشمیر او پنجاب په لاره هم تجارت کیدلو. د ایشیا او یورپ ترمینځه به نور ټول تجارت هم په دے لار و جاری وو[1].

---

[1] په ۲۴۹ ق.م کښې چه ارساس پارتی د شام د سلوسی خاندان نه بغاوت اوکړو او په پارتیا کښې ئے خپل آزاد حکومت قائم کړو. او د وخت په تیریدو سره دا حکومت په یو ناقابل تسخیر عظیم سلطنت کښې بدل شو نو د غه وخت تجارتی لارے د ایران د پارتی حکومت په ولقه کښې راغلے. چونکه پارتی حکومت به اکثر د رومیانو سره په جنګونو کښې بوخت و نو دا تجارتی لارے به اکثر بندے وے. د پارتی سلطنت په مشرقی پوله دکوشانی سلطنت عروج د پارتیانو د پاره ډیر مشکلات پیدا کړل. دوی به یو طرف ته د رومیانو سره او بل لور ته دکوشانیانو سره په جنګونو کښې اخته وو. د دے جنګونو په نتیجه کښې د ایران پارتی حکومت د یو معمولی ریاست حیثیت اختیار کړو.

د ملکي مالونو د فروخت نه علاوه د بيروني مالونو د محصولاتو نه به هم کوشاني سلطنت ته بې حسابه فائده رسيدله. په يو لور د رومي سلطنت سروزرو د ښښتو، چينيانو او هندي سوداګرو توجه خپل ځان ته ګرځولې وه. په بل لور چينيان چه تجارت پيشه خلق وو. او د ايشيا په تجارت کې د قبضې نه علاوه د ريښمو او د ريښمي مصنوعاتو هم واحد مالکان وو. دا مصنوعات داسې وو چه د صحرا نشينانو د خيمو نه واخلې د روما د پاپايانو عظيم الشانه محلاتو پورې په هر ځائې کښې به په ډيرې ليوالتيا غوښتلې شول. د چيني ريښمو او د هغې د مصنوعاتو نه علاوه چه کوشاني سلطنت ته به پرې د چونګي د محصولاتو نه ډير رقم په لاس راتلو. د کوشاني سلطنت خپل مالونه به هم په لويه پيمانه روما او چين ته ليږلې شول. د کابل، ګندهارا او کشمير وړئ د سند ده چپړ (ګوند) د ياتلي پوترا لاک، د هند عطريات او داروګان، د بدخشان لحلونه او قيمتي کاڼي داسې اموال وو چه د روما سلطنت کې به لويه پيمانه خريدار وو. د ګندهارا په برآمدي مالونو کښې راڼجهٔ هم سرفهرست وو. د چين ملکه او د چيني اميرانو بيګمات د ګندهارا د رنجو ډيرې قدردانې او لوئې خريدارې وې. او په ډير لوئې قيمت به ئې دا راڼجهٔ اخستل. چونکه د تجارت ټولې شاهراګانې د کوشاني سلطنت په ولقه کښې وې نو په دې وجه د هند،

چين او رومن سلطنت ترمينځه ټول تجارت هم د دوی په قبضه کښې وو.

د مغرب سره د کوشانيانو دا تجارتي ترقي د دويمې صدئ مسيحي د آخرنه ورو ورو په کميدو شوه. او کوم وخت چه ساساني خاندان په ايران کښې اقتدار بيامونده او يو نوې سلطنت ئې تشکيل کړو. نو د رومي سوداګرانو لارې د مشرق سره بنده کړه. او بيا چه د ساسانيانو او « هفتاليتو » (رهيا طله هڼز) ترمينځه د جنګونو سلسله شروع شوه. او د ايشيا په دې حصو کښې امن وامان مفقود شو. نو د خشکي لارې بيخي بندې شوې. د غه وخت رومپانو د بحري تجارت په لور توجه اوکړه. او د هند د علاقو سره به ئې د سمندر په لاره تجارت کولو. او د خشکئ دا لارې د چنګيز خان تر زمانې پورې بندې وې.

**ژبه او رسم الخط:-** دا خبره لا تر اوسه په يقيني ډول معلومه نهٔ ده چه د قديم افغانستان او ګندهارا خپل رسم الخط څهٔ وو؟ او په قديمه زمانه کښې دلې کومه ژبه يا ژبې وئيلې شوې. البته دومره خبره معلومه ده چه د کوشانيانو په زمانه

کښې په دے علاقو کښې د " ساکا " اولس ژبې مروجې وے. او دکوشانیانو خپله ژبه هم ددے قسم یوه ژبه وه - چه دژبو په کورنۍ کښې په ایرانی ډله کښې شامله ده. او ښمونه ئې دکنشکا په مسکوکاتو کښې لیدلی ده. دغه رنګ دکوشانیانو په سلطنت کښې درے رسم الخطونه جاری وو. چه یو خروشتی، بل برهمی او دریم یونانی وو. اولنی دواړه رسم الخطونه ملکی رسم الخطونه وو او یونانی رسم الخط د سکندر دفتوحاتو نه پس د باختری یونانیانو د دوه سوه کلیز حکومت په نتیجه کښې د ملک په اطرافو کښې خور او مروج شوے وو. اګرچه د دے خبرے قرائن هم موجود دی. چه یونانی رسم الخط د سکندر د فتوحاتو نه ډیر آګاهو دګند هارا په علاقه کښې مروج وو. لکه چه " پانینی " او د دغهٔ شارحینو دا رسم الخط د " یاوانا " په نامه یاد کړے دے او مراد ترنه یونانی رسم الخط دے.

چونکه دکوشانیانو دورحکومت د خروشتی رسم الخط د ترقئ زمانه وه. په دے وجه د دے رسم الخط په مقله څه تفصیل به بے ځایه نهٔ وی.

**خروشتی رسم الخط :-** دا یو پخوانے رسم الخط دے. چه په مختلفونومونو یاد شوے دے. او یوه نامه ئې خروشتی هم ده. دغه رسم الخط په اول وار دباختر یونانی باچا " ایوکراتیډاس " د محلی رسم الخط په ډول په خپلو مسکوکاتو کښې استعمال کړے دے. دا خط د هندوکش په سویلی او ختیزو علاقو کښې عام وو. خروشتی او برهمی دواړه لیک دودونه د یوے زمانے خطونه دی. چه اولنے په افغانستان اوګندهارا کښې او دویم په هند کښې مروج وو. د دے دواړو رسم الخطونو مبداء آرامی خط ګڼلے شی.

د عالمانو خیال دے چه رسم الخط د سمیریانو ایجاد دے. دغه خلق د ننی عراق په مزکه میشته وو. دوی د میخ په شکل کښې حروف ایجاد کړی وو. چه اوس ورته خط میخی وئیلے شی. د دوی نه دا خط آ ثوریانو زده کړو. او وروستو آرامیانو. (چه په شام او بابل کښې میشته وو. او کلدانیانو او آثوریانو ته هم آرامیان وئیلے شی).

آثوریانو په دغه میخی خط کښې څه تبدیلئ او اصلاحات اوکړل. د دوئ نه نورو قامونو لکه فینقیانو دغه خط زده کړو. او د خپل ضرورت مطابق ئې کښې دوی هم څه اصلاحات اوکړل. وروستو د یونانیانو وار راغے. او دیونانی " الف. با " نه

لاطيني او سادوى خطونه پيدا شول ـ او څه رنګ چه رسم الخط پورې په پورې د يورپ په لور خور شو دغه رنګ د مشرق په لور په آسيا کښې هم خور شو ـ

د عالمانو د تحقيق مطابق په هند، ايران، افغانستان او ګند هارا وغيره ملکونو کښې ليک او رسم الخط د آرامي ژبې نه راوتلي دے ـ دغه رسم الخطونه په مختلفو لارو او مختلفو وختونو کښې دے ملکونو ته رارسيدلي دى ـ او غالب ګمان دا دے چه آرامي رسم الخط به شايد چه د سمندر په لاره د هند جنوب ته او د هغه ځائے نه به دکن ته رسيدلے وى ـ او دغه کار به د ماڼګانو او سوداګرانو په ذريعه شوے وى ـ د ځينې عالمانو په خيال کښې دغه ماڼګان او سوداګران « فينقيان » او د ځنو په خيال کښې دوى بابليان دى ـ او ځينې دا هم دى چه دا سوداګران او ماڼګان هنديان ګڼي ـ او دا هم وائي چه په اوومه اتمه صدۍ (ق ـ م) کښې هنديان د سمندري سفرونو ډير مينى وو ـ دغه خط چه په هند کښې خور شو نو د دے نه هندى الف ـ با ايجاد شول ـ او ځنې چه وروستو ترينه د تبت، سيلون، سيام او برما خطونه هم پيدا شول ـ په دے ټولو خطونو کښې مشهور « ديوناګرى » خط دے چه په هغې کښې به د هند علمى ژبه سنسکرت ليکلے شوه ـ

**آرامي رسم الخط په دے ملکونو کښې څه رنګ خور شو؟** :ـ د ځينې عالمانو دا عقيده ده چه د هخا منشي دورے نه ډير وړاندے آرامي رسم الخط د مشرق په لرے لرے ځايونو کښې خور شوے وو ـ چنانچه د ځينې عالمانو د عقيدے مطابق په ګندهارا کښې د آرامي رسم الخط باعث ځينې سامي قبائيل وو چه په دے زمکه استوګن شوى وو ـ او د دوى په وجه دا خط په دے علاقه کښې مروج شوے وو[۱] ـ

ولے ځينې عالمان دے عقيدے ته مائل دى چه دا رسم الخط د فارس نه افغانستان ته او بيا د هند شمال او غربي علاقو ته د خشکۍ په لار د هخا منشيانو د ناټانو او منشيانو سره راغلے او خور شوے دے ـ

هخا منشيانو څه رنګ چه معمارى، سکه سازى او نور فنون لطيفه د ساميانو نه نقل او تقليد کړى دى ـ دغه رنګ ئے رسم الخط هم د ساميانو نه اخذ کړے دے ـ

---

[۱] د بناغلى پروفيسر شيخ عبد القادر د مقالے هغه اقتباس چه وړاندے چرته ليکلے شوے دے ـ د دے په حقله لوستل بکار دى ـ

او میخی رسم الخط چه پښت په پښت د سمیریانو نه پاتې وو ـ د آرامیانو او آسوریانو نه ئې اخستې دے۔ او د غه خط ئې په خپل سلطنت کښې خور کړے دے۔ او بیا ددوی د ناټانو او حاکمانو سره سره د مشرق ملکونو ته رسیدلے دے۔ چنانچه په دے دستور دا رسم الخط د افغانستان او اباسیند د شرقی غاړے نه هم تیر شوے دے ـ د آرامی ژبے کومه کتبه چه د ټېکسلا دکنډ والو نه راوتلی ده۔ ددے خبرے تائید کوی ـ دا کتبه د عالمانو په خیال کښے د پنځمے او شلورمے صدئ ق ـ م زمانے سره اړه لری. اګرچه د دے کتبے مفهوم نه دے معلوم شوے ولے ددے نه دومره خو ثابتیږی چه آرامی رسم الخط د حضرت مسیحؑ نه څو صدئ وړاندے د ټېکسلا پورے رسیدلے وو۔ او د دے نه دا هم معلومیږی چه خروشتی رسم الخط د پنځمے صدئ ق ـ م په خواوشا کښے او یا د دے نه وړاندے په دغه علاقو کښے مروج وو۔

په افغانستان اوګند هارا کښے آرامی رسم الخط څومره موده مروج وو؟ د دے جواب په واضح ډول نهٔ شی ورکیدلے۔ البته دومره ویلے شی چه څه رنګ په هندی کښے د زمانے د تقاضا مطابق برهمی رسم الخط په وجود کښے راغلو۔ دغه رنګ په افغانستان اوګند هارا کښے د مختلفو ضروریاتو او تقاضو زیر اثر یو بل رسم الخط رائج شو۔ چه اوس ورته خروشتی رسم الخط ویلے شی۔ چونکه خروشتی او برهمی دواړه خطونه هم غاړی او د یوے زمانے دی۔ او د برهمی خط نمونے هم په دے علاقو کښے پیدا شوی دی۔ نو د دے خطونو تفصیلی ذکر به د فائدے نه خالی نهٔ وی۔

**خروشتی رسم الخط :-** په ۱۸۳۸ء کښے او د دے نه څه وړاندے هم انګریزی عالمانو په اول وار د افغانستان د علاقو نه د پخوانئ زمانے مسکوکات جمع کړل۔ او د عالمانو تحقیقات ته ئې وړاندے کړل۔ (په دے تحقیقاتو کښے د "جیمس پرنسپ" نومے یو انګریز عالم چه د بنګال د راټل ایشیاټک سوسایټئ یو غړے وو لویه برخه ده)۔

د خوش قسمتئ نه په څنې مسکوکاتو باندے د یونانئ ژبے د لیک نه علاوه په یوه نامعلومه ژبه کښے هم لیک موجود وو۔ دا لیک په دغه وخت کښے بیخی یو مجهول لیک وو۔ او د لوستلو د پاره ئې د عالمانو په لاس کښے هیڅ څه ذریعه نهٔ وه۔ " جیمس پرنسپ " یونانی ژبه د دے نامعلومے ژبے د پاره د کنجئ په طور استعمال کړه او په یوه سکه ئې د باچا نوم چه د دواړو ژبو په لیک کښے ئې څه فرق نهٔ لرلو۔ اولوستلو۔ او د دے نه پس ئې د قیمت د دے نور لفظونه چه د باچا د نوم سره جوخت وو اولوستل۔

او په دې دستور د دغې نامعلومې ژبې کنجي په لاس ورغله - او د دې تحقیق په رڼا کښې د دې ژبې اووه اتۀ لفظونه اولوستلې شول - او څه نیم نیمګوری الف - باټې هم متعین شول - دلته بیا دا سوال پیدا شو چه داکومه ژبه کیدې شي؟ « جیمس پرنسپ » دافغانستان پښوانیو ژبو ته رجوع اوکړه - او کله به ئې دې ته « زند » کله « اوستائي » او کله سنسکرت وئیل - ولې په یقیني ډول دا نۀ شوه معلومیدې چه داکومه ژبه ده - په یولوری چه کومې اووۀ اتۀ کلیې معلومې شوې وې - هغو د سنسکرت سره نژدیکت لرلو - بل لور ته به دا ژبه د سامي ژبو په شان د ښي طرف نه ګس طرف ته لیکلې شوه - آخر په دا یقین حاصل شو چه دا لفظونه د «سنسکرت» سره نزدیکت لري - نو د لیک د طرز نه ئې صرف نظر اوکړو - او دا ئې اووئیل چه ممکنه ده چه دا د افغانستان یوه پښوانۍ ژبه وي - او که چرې په پښتو کښې چه د ملک د اولس ژبه ده تحقیق اوکړې شي - نو په آئنده زمانو کښې به دا غوټه پرانستلې شي -

د دې نه پس به بلخ کښې هم یوه کتبه پیدا شوه چه په دې رسم الخط کښې ده. او د پنجاب په علاقو کښې هم د دې رسم الخط څئې کتبات اوموندلې شول - دغه وخت د دې خط نامه « باختري هندي » کیښودلې شوه - ولې متاسفانه چه جیمس پرنسپ هم په دې ورځو کښې وفات شو - او د دې رسم الخط په حقله تحقیقات په التوا کښې پریوتل - ورو ورو دافغانستان په مختلفو علاقو کښې د دې رسم الخط نور کتبات په مختلفو وختونو کښې هم اوموندلې شول - د شلیې صدئ په آغاز کښې د دې رسم الخط کتباتو د اروپائي عالمانو توجه یو ځل بیا ځان ته را اوګرزوله - او د دې وجه دا وه چه په چیني ترکستان کښې هم د دې رسم الخط کتبات او موندلې شول -

د دې رسم الخط په حقله د عالمانو د تحقیقاتو خلاصه دا ده چه د پنځیې صدئ (ق - م) نه په ګندهارا، کاپیسا او پنجاب کښې د هندي اولي، دوؤ الف - باؤ نه یو په دې علاقو کښې جاري وو - دا رسم الخط د یونانیانو د راتلو نه ډیر وړاندې د هخامنشیانو د سلطنت په مشرقي صوبو کښې معمول وو - د عالمانو په دې خبره اتفاق دې چه د دې دوؤ الف باؤ نه یو شمالي « الف - با » چه اوس ورته خروشتي وئیلې شي - او مخکښې ورته « باختري هندي » وئیلې شول - د آرامي ژبې د « الف - با »

نه اخذ شوے دے چه په ایران کښے په هخا منشی دوره کښے مروج وو- او کیدا ی شی چه دا لیک دود د ایرانی باچا دارایوش اول د جنګونو او بیا د همدهٔ د حکومت په دوره کښے د حکومت د منشیانو او اهلکارو په واسطه افغانستان ته او بیا د دغ ملک نه ګندهارا او هند ته د سرحدی قربت او روابطو په سلسله کښے د شپږمے پنځمے صدئ ق.م په خواوشا کښے رسیدلے دے- دا خط د آرامی ژبے په شان د ښی لور نه ګس لوری ته لیکلے شی -

د اشوکا په زمانه کښے دوه رسم الخطونه جاری وو- یعنی (۱) خروشتی چه د ښی لور نه به ګس لور ته لیکلے شو- او د قطب قبلے علاقو کښے مروج وو- او (۲) برهمی چه د ګس لوری نه به ښی لوری ته لیکلے شو- او د هند موجوده ټول "الف-با" د دے نه راوتلی دی- په جنوبی علاقو کښے مروج وو-

د برهمی رسم الخط مبداء روښن نهٔ دے- د "بوهلر" په قول دا رسم الخط د "جنوبی سامی" الف-با نه راوتلے دے- او د دے اسباب تجارتی تعلقات ګڼلے شی- ولے څهٔ داسے سند نشته چه د دے اشتقاق د سامی رسم الخط نه ثابت کړی- بل طرف ته چونکه (برهمی او خروشتی) دواړه الف-با یو صوتی اصول لری- نو د یو بل نه جدا کیدے هم نشی- د بوهلر په خیال کښے د خروشتی لیک په شمال مغرب کښے محدود پاتے کیدل غالباً په دے وجه وو چه د جمنا په میدانونو کښے برهمی رسم الخط موجود وو-

**د خروشتی رسم الخط:-** د "بوهلر" په خیال کښے خروشتی "الف با" د "آرامی" نه راوتلی دی- او آرامی ژبه په هخا منشی دوره کښے د دوی په ټول سلطنت کښے چه د هند شمال غربی علاقے پکښے هم شاملے وے مروجه وه-

د دے (خروشتی) رسم الخط د څښے مرکب "حروفِ صحیح" او "حروفِ علت" د شکلونو نه دا معلومیږی چه دا الف-با د برهمی په کومک جوړ شوی دی- او په دے بنا برهمی الف-با د دے نه وړاندے موجود وو- د "بوهلر" په عقیده کښے دا رسم الخط د هخا منشی "ستراپانو" او د اولسی سردارانو د اختلاط او آمیزش په نتیجه کښے وجود ته راغلے دے- او دا خبره د سکندر د حملهٔ هند نه هم ثابتیږی چه په هخامنشی دوره کښے به د ایرانی "ستراپانو" سره اولسی حاکمان هم د مالئے او اخراج د وصولولو په غرض مقرر وو- هندیانو به شاید چه د دے نه مخکښے خالص آرامی الف-با استعمالول او بیائے به دے کښے د زمانے په تیریدو سره څه داسے تبدیلئ اوکړے- چه اوس په خروشتی رسم الخط کښے لیدلے شی-

د خروشتی رسم الخط د الف-با تکمیل په ډیره موده کښے شوے دے- البته په دریمه

صدئ ق-م کښې دا الف- با مکمل وو- لکه چه د مانسهرے (ضلع هزاره) او د شهباز ګړهے په کتباتو باندے لیک شوے د اشوکا د فرامینو نه دا خبره څرګنده ده لیکن دا هم یاد ساتل پکار دی چه په دے زمانه کښې آرامی ژبه هم په استعمال کښې وه. او د ټیکسلا د "آرامی ژبے" په کتبه کښې د اشوکا عموی تسمیه "پریا داشن" (PREYADASIN) لوستلے شوے ده. د دے نه دا معلومیږی چه خروشتی الف- با د پنځه سوو کلونو نه زیات مستعمل وو. د دے رسم الخط آخری کتبات د څلورمے او پنځمے صدئ میلادی سره تعلق لری- خروشتی رسم الخط د "بوهلر" په خیال کښې یو دفتری خط وو. او د مذهب سره ئے څه اړه نۀ لرله-

دا رسم الخط د افغانستان په ټولو حصو ګندهارا او پنجاب کښې مروج وو- ولے د افغانستان په مرکزی حصو کښې ئے زیات رواج لرلو- د دے رسم الخط یوه کتبه د برهمی رسم الخط سره په بلوچستان کښې هم موندلے شوی ده. او په دے دلالت کوی چه په "جنوبی روشیا" کښې هم دغه خط مروج وو. د افغانستان په شمال کښې د بلخ نه هم د دے کتبات موندلے شوی دی-

**یونانی رسم الخط**:- په مشرق کښې د سکندر د فتوحاتو په نتیجه کښې په افغانستان کښې د باختری یونانیانو د سلطنت په تشکیل سره دا موقع پیدا شوه چه د دوو سوو کالونو په عرصه کښې یونانی تهذیب د ملکی تهذیب سره خلط ملط اوګرځی او د دے ګډون نه یو مخصوص تهذیب ظاهر شی- اګرچه بے د مسکوکاتو او څنے مهرونو نه د یونانی ژبے او رسم الخط کتبات څه داسے په خاص مقدار کښې نۀ دی موندلی شوی- لیکن د محققینو خیال دے چه یونانی ژبه او رسم الخط تر دیرے مودے په باختر کښې مروج وو- یونانی ژبه او رسم الخط چونکه د ملکی خلقو د پوهے او فهم نه بهر وو- نو د "ایوکراتیدس" په مسکوکاتو باندے علاقائی ژبے (یا ژبه) هم په خروشتی رسم الخط کښې لیکل شروع شوے. او دغه رواج د کوشانیانو په عهد کښې هم وو- لیکن په دے زمانه کښې د دے خط رواج هسے د تقلید په ډول وو- ورو ورو په دے کښې تغیرات راغلل- دغه یونانی "الف- با" چه لږه تبدیلی پکښې پیدا شوی وه- څنے عالمانو د "یونانی کوشانی" په نامه هم یاد کړی دی- دا رسم الخط د کوشانیانو د زوال نه پس هم موجود وو- په اوومه صدئ مسیحی کښې چینی زائر "هیون سانګ" د افغانستان نه د تیریدو په وخت کښې د یو داسے خط ذکر کوی چه د ګس لوری نه به ښی لوری ته لیکلے شو- او دا رسم الخط د عالمانو په خیال کښې هم دغه یونانی رسم الخط کیدے شی- چه د کوشانیانو په عهد کښې مروج وو-

**برهمی یا کوشانی رسم الخط :-** د پورته دوو رسم الخطونو نه علاوه د کوشانیانو په سلطنت کښې یو بل رسم الخط هم جاری وو- دے رسم الخط ته څینے کسانو برهمی او څینے کوشانی رسم الخط وئیلے دے- د دے رسم الخط شواهد د بامیان نه موندلے شوی دی- د بامیان د دے پخوانو نوشتو د ژورے مطالعے نه پس ماهرین دے نتیجې ته رسیدلی دی چه په دے خطونو کښې د برهمی رسم الخط نمونے زیاتے او د خروشتی رسم الخط آثار نسبتاً کم دی- په دے نوشتو کښې د ټولو نه زړے نوشتے د دریمے څلورمے مسیحی صدیو سره تعلق لری- او څینے د اووے اتمے صدئ مسیحی سره- د بامیان دا نوشتے په دے خبره دلالت کوی چه نه صرف د کوشانیانو په دوره کښې بلکه د دین اسلام تر ظهوره پورے د هندوکش په جنوبی علاقو کښې برهمی، خروشتی، او یونانی رسم الخطونه مروج وو-

**ادبیات او آرټ :-** اګرچه د مسکوکاتو او مجسمو د مطالعے نه کوشانیان د قیافے نه سخت زړګی او خشک معلومیږی- ولے تر څو مره چه د دوئ د حالاتو نه پرده اوچته شوے ده- دا وئیل بے ځایه نه دی چه د دوی دره سوه کلیزه دوره بالخصوص د کنشکا دوره یو داسے دوره وه- چه ادبیاتو او صنائع لطیفه پکښې وده او نشو نما موندلے ده- او د دوی دا دوره د صنائعو او ادبیاتو د شیرازئ دوره ګڼلے شي- کنشکا څه رنګ چه د خپلو مذهبی عقائدو له مخه د بودائي آئین یو لوئے سرپرست وو- دغه شان ئے د ادب و آرټ سرپرستی هم کړی وه- د کوشانیانو په زمانه کښې په ګندهارا او د قدیم افغانستان په مختلفو اطرافو کښې د سیتی قبائیلو لهجے چه د کوشانیانو خپله لهجه هم پکښې شامله وه مروجے وے. او پراکرت او سنسکرت ژبے علمی او مذهبی ژبے وے- د بودائي آئین کتابونه او څینے ادبیات چه تقریباً زرکاله په ګندهارا او افغانستان کښې مروج وو- اکثر په سنسکرت پکښې په "پراکرت" کښې لیکلے شوی دی- دا کتابونه به (لکه چه د بامیان او ګلګت) د نوشتو نه مرسته موی- اکثر په تور رنګ او کله کله په سور رنګ لیکلے شول- او د کاغذ په ځائے به د څڼاورو څرمنے استعمالیدلے- هم په دے دول نور فنون لطیفه لکه معماری، هیکل تراشی، نقاشی او په تیره تیره موسیقی د کنشک په زمانه کښې د ترقئ اوچتو پوړیو ته رسیدلی وو-

---

له دا خبره د کنشکا د هغه بے سره مجسمے نه معلومیږی چه د مات نوے کلی نه برآمد شوے ده- په دے مجسمه کښې کنشکا په خپل وطنی لباس کښې ملبوس دے- دا مجسمه د فن یو بے نظیره نمونه ګڼلے شي-

**موسیقي :-** د کنشک په زمانه کښې موسیقۍ ډېره ترقي کړې ده. د "بامیان" او "کاپیسا" په معابدو کښې ځينې داسې تمثالونه کشف شوي دي - چه د هغې نه د موسیقۍ د ترقۍ اندازه لګېدې شي - بودائي آئين د انساني مصيبتونو، غمونو، کړاونو او فکرونو د علاج مدعي وو - او د روحاني تسکين او اطمينان د حصول په غرض به ئې د موسیقۍ نه ډېر کار اخستلو - د کنشکا د عهد سحر طراز ليکوال "اسواکوشا" چه ذکر ئې وړاندې شوې دے - په موسیقۍ کښې هم لوئې ماهر وو - او د دهٔ آواز هم ډېر خوږ او د تاثير نه ډک وو - او د دے صفتونو نه به ئې د بودائي آئين د خدمت په لړ کښې ډېر کار اخستلو - وئيلې شي چه د دهٔ په آواز کښې داسې سوز و تاثير وو - چه چا به د دهٔ سرود اورېدلو نو د دنيا نه به ئې زړهٔ توريدلو - او مذهب ته به متوجه کېدلو - د دے نه دا قياس کېدے شي چه په دے ډول به داسې نور ماهر او چابکدست فنکاران هم وو - چه هغوی به د کندهارا د غرونو په لمنو کښې آبادو معبدو کښې د دے فن (موسیقۍ) نه د مذهب د خدمت په لار کښې ډېر کار اخستلو -

**کوشاني عهد او پښتانهٔ :-** ولې دا ډېره د تعجب خبره ده چه باوجود د دے چه د کوشاني عهد د مسکوکاتو او ادبي شاهکارونو يوه لويه ذخيره موجوده ده - او د دے ذخيرے په کومک د دے خاندان د عهد څه نيم ګړي حالات مرتب شوي دي - ولې د دے پريوانه ادبي ذخيرے نه د کندهارا د او سيدونکو يعنې د هغه خلقو چه کوشانيانو پرِ حکومت کولو - د نسل، ژبې، ژوند ژواک په حقله هيڅ معلومات په لاس نهٔ راځي - په دے دوره کښې نه خو مونږ د هغه قومونو په حقله څه بيا واورېدل - کوم چه مونږ د ميرو ډوتس د خولے نه سوونه کاله وړاندې اورېدلي وو - او نهٔ مونږ د دے خلقو د ژوند د لارو چارو او ژبې په حقله څه اولیدل - او د پښتنو د تاريخ په باب کښې دا دوره هم يو تاريکه دوره ده - البته په دے دوره کښې د پښتو ژبې يو لفظ زما په خيال کښې معلومېدے شي او هغه د کنشکا او "هوېشکا" په ځينې مسکوکاتو باندے د رب النوع آفتاب (ميترا) نوم دے - دا نوم په دے مسکوکاتو د "ميرو" په لفظ ليکلے شوے دے - او ميرو (آفتاب) د (مير) په لفظ په دے خپل اصلي او قديمي شکل تراوسه په پښتو کښې موجود دے -

دا خبره په دے لحاظ هم قابل افسوس ده چه د دے بے شماره مسکوکاتو او پريوانه ادبي ذخيرے باوجود د حکمران خاندان خپل حالات هم په تياره کښې دي - او د دے نه خو

د دوی د اصل نسل په حقله څه یقیني معلومات حاصلیدے شي او نهٔ د دوی د ژبے او ژوند ژواک په حقله. دا خبره هم په خپل ځائے درست ده چه د کوشانیانو یعنی د کنشک اول په زمانه کښے "پیښور" د هغه وخت د یو عظیم الشانه سلطنت صدر مقام وو. ولے د پیښور په باب کښے هم څه تفصیلی حالات په لاس نهٔ راځي او د وادئ ګندهارا د استوګنو حالات خو بیخي په تیاره کښے پټ دی۔

د وادئ ګندهارا د موجوده پښتنو د پاره به شاید چه دا تصور هم حیرت ناک وي چه د کنشکا په زمانه کښے پیښور د یو داسے مذهب (بدهه) د تعلیماتو مرکز وو چه هغهٔ د کنشکا د مذهبي اصلاحاتو په اثر کښے یو نوے شکل موندلے وو۔ او د هغې په نتیجه کښے د هیکل تراشئ په صنعت کښے به د ژوندا مسکون او د نجات سامان پیدا کولے شو۔ وروستو د زمانے په تیریدو سره د غه ښار د یو داسے مذهب (اسلام) د تعلیماتو مرکز او ګرزیدلو چه د هغې پیروکارد خپلے مذهبي عقیدے له مخه د بت تراشئ او بت پرستئ نه سخت روګردان او متنفر دی۔ دا خبره خو د تاریخي شواهدو په رڼا کښے وړاندے وئیلی شوی ده چه د وادئ ګندهارا د موجوده پښتنو اسلاف د هغه وخت نه سوونه کاله وړاندے په دے علاقه کښے آباد شوی وو رکوم وخت چه د کنشکا د لورې نه بدهه مذهب ته یو نوے ژوند ورښښلے شو او دا خو قطعي معلومه ده چه د موجوده پښتنو اسلاف د ګندهارا په علاقه کښے د "ساکا پهلوا" قبائیلو نه (چه کوشانیان هم د دے ایرانی نسل ساکا قبائیلو یو ه نوی چپه وه۔) په هیڅ صورت کښے وروستو نهٔ دی راغلی۔ یا داسے به اُووایو چه د وادئ ګندهارا د موجوده پښتنو اسلاف د هغه وخت نه سوونه کاله وړاندے په ګندهارا کښے میشته شوی وو۔ کوم وخت چه د کنشکا د مذهبي سرګرمیټو په نتیجه کښے بدهه مذهب په یو نوی چاله (هیکل تراشئ او بت پرستئ) روان شوے وو۔ په دے صورت کښے دا ظاهره ده چه د هغه وخت پښتانهٔ به هم د دے مذهب سرګرم مرستیال او پیروکار وو۔ د ګندهارا د مختلفو مقاماتو نه چه کوم بُتان برآمد شوی د هغې نه د دے پورته قیاس مرسته کیږی۔ د دے بتانو نه چه بنده ګوری نو داسے معلومیږی چه یو ښکلے پښتون ځوان دے۔ د دهٔ دنګه غړې، نرئ او رده پوزه، بادامی سترګے، ډک ډک اندامونه، او په شونډو کښے مُسکا۔ د دے ثبوت دے چه یونانی فنکار په لاس جوړ شوے دے۔ د دهٔ جامے د نن زمانے د پښتنو د جامو په شان دی۔ د ارتو پیځو پرتوګ، ارته بیږته خلقه، داوږدو نه ټے ځادر تاؤ په پښو کښے ټے چپلئ، په غوږونو کښے ټے والئ او په غاړه کښے امیلونه بید و د اوسنو پښتنو په شان ښکاری۔ د دے نه دا هم معلومیږی چه د پښتنو په جامه او پیزار کښے په نولس سوه کاله کښے هم څه نمایان فرق نهٔ دے راغلے۔ او د دے نه د پښتنو خپلو روایاتو سره مینه او تعلق هم څرګندیږی۔ او زما په خیال کښے هم دغه حیرتناک تصور دے چه په نن زمانه کښے ټے د پښتنو ځنے لیکوال د پښتنو د اصل نسل په باب کښے د اسرائیلیت نظرئے ته مائل کړی دی۔

# ساساني دوره

د کوشانیانو آخري معلوم بادشاه «واسو دیوا» د ۲۲۵ع په حدود کښې وفات شو او عین هم په دغه وخت کښې په ایران کښې د یو نوي سلطنت بنیاد کیښودلے شو. د دے سلطنت باني آرد شیر نومیده چه د پلار نامه ئې پابغ (PABGH) او د نیکهٔ نامه ئې ساسان وه. او ددهٔ په نامه هخه خاندان د ساساني خاندان په نامه مشهور شو. ساسان په ایران کښې د اسطخر نومے ښار د یو معبد منجور وو. او د هخامنشي خاندان د نسل یو غړے وو. ددهٔ ښځه د شاهي خاندان یو میرمنه وه. د ساسان د مرګ نه پس د هغهٔ ځوئے «پابغ» د دے معبد منجور شو. د دغه سړي د شاهي خاندان د خپلولۍ نه فائده واخسته او د خپل ځوي آرد شیر د پاره د یو فوځي عهدے په حاصلولو کښې کامیاب شو. او آرد شیر چه یو دورس او د کار سړے وو د خپل اقتدار په زیاتولو کښې لګیا شو. او ورو ورو ئې خپله پره جنبه مضبوطه کړه.

په دغه زمانه کښې د ایران پارتي حکومت د خپل ژوند آخري شپې ورځې شمیرلے. او په ملک کښې طوائف الملوکي وه. د هر ښار حاکم خپل ځان خود مختار ګڼلو. آرد شیر د دے وضعیت نه فائده واخسته. او وارهٔ وارهٔ ښارونه ئې فتح کړل. او بغاوت ئې اوکړو دارساس د خاندان آخري پارتین باچا «ارتبان» ددهٔ مقابله اوکړه. ولے په جنګ کښې مړ شو. او د دے جنګ په نتیجه کښې آرد شیر د ایران مستقل بادشاه شو.

د دویمې صدۍ د آخر او د دریمې صدۍ د آغاز نه د کوشاني خاندان په سلطنت کښې د ضعف و زوال نخښې ښنا ئے ښکاره شوے وے. د دے زوال د یقیني اسبابو تعین نهٔ شي کیدے. البته د دے ضعف په اسبابو کښې که په یو لوړ په ایران کښې د یو نوي مقتدر سلطنت تشکیل یو لوئے عامل ګڼلے شي. نو په بل لور د کنشک د وفات نه پس د دے خاندان د بادشاهانو د خپلو هندي مقبوضاتو سره زیاته مینه او د خپل اصلي مرکز نه د دوي لرے والے او بے تعلقه پاتے کیدل هم یو لوئے سبب ګڼلے شي. او ځنے

عالمان دا سے هم دی چه د هغوی په خیال کښې د کنشک او د هغهٔ د جانشینانو د بده مذاهب سره حد په هورته شغف د دے زوال یو لوئ باعث دے - به هرحال د کوشانی سلطنت د ضعف و زوال اسباب چه هرڅه اوګڼلے شی - دا یو حقیقت دے چه د کوشانیانو سلطنت د خپل عروج او اقتدار په وخت کښې او د رومیانو سره د خوشګوار سیاسی او تجارتی روابطو په وجه چونکه د ایران د پارتی حکومت په لاره کښې یو لوئ بندیز وو - او هم د دے وجوهاتو په بنا د ایران پارتی حکومت کمزورے شوے وو - نو آردشیر د خپلے تخت نشینئ سره سم د کوشانیانو د ضعف نه فائده واخسته - او د دوی په سلطنت کښې چغه اوویستله - او د اباسیند پورے علاقه ئے رالاندے کړه - او د کوشانی سلطنت د غه حصه ئے په خراج ورکولو مجبوره کړه - او یو څل بیا د ګند هارا پورے علاقه د ایرانی سلطنت مقبوضه شوه - اګرچه د دوی دا قبضه ډیره کمزوری او هسے په نوم وه -

لیکن د کوشانی دورے دا سقوط د یو خاندان سقوط یا د یو سلطنت د یو باچا قتل یا مرګ نهٔ وو - بلکه دا یو معنوی سقوط وو - چه د کوشانیانو د عظمت او جاه و جلال او اقتدار سره ئے تعلق لرلو - ځکه چه د دے نه پس هم د کوشانی تبر افراد د باجګذار او علاقائی حکمرانانو په حیثیت موجود وو - او د اسلام د ظهور پورے په دغه وطن کښې چه هرڅومره علاقائی ریاستونه قائم شوی وو - د هغو حکمرانانو په خپله نسلی سلسله د کنشک اعظم سره جنګوله - ولے د دوی د عظمت او اقتدار دوره ختمه شوی وه -

لکه چه او وئیلے شول - د اباسیند نه په قبله د کوشانیانو د اقتدار دوره د ، واسو دیوا ، په مرګ ختمه شوه - ولے د غه وخت د دے سلطنت هندی مقبوضات لا هم د دے خاندان په قبضه کښې وو - ورو ورو دغه علاقے هم د هند د ، ګپتا ، خاندان په سلطنت کښې مذغم شوے - په دغه زمانه کښې د اباسیند نه په قبله کوشانیان په دوؤ مرکزونو کښې تقسیم وو - د دوی یو مرکز په باختر کښې وو - او بل مرکز ئے په وادئ کابل کښې ګند هارا هم په دے مرکز کښې شامله وه - دا خبره په یقینی ډول معلومه نهٔ ده چه ګند هارا او وادئ کابل به په کوم کال د ساسانی سلطنت د یو باجګذار سوبے حیثیت موندلے وی - البته د شاه پور اول (چه د آرد شیر ځوئے وو) د یو کتیبے نه چه د (۲۴۳-۲۶۰) په مینځ مینځ کښې د نقش رستم د آتشکدے په یو

دیوال باندے لیکلی شوی دہ- دا معلومیږی چه په دغه زمانه کښے د مشرق په لور د ساسانی حکومت آخری پولا د پاسکیبورا ( PASKABURA ) ښار وو - دا ښار (پاسکیبوُ) هم هغه ښار کیدے شی کوم چه هیرو دوټس د « کاسپتروس » یا « پاسپکروس » په نامه یاد کړے دے- او مراد ترینه پیښور دے- د دے نه دا قیاس کیدے شی چه د ګندهارا علاقه به د اباسیند ترغاړے د آرد شیر اول په وخت کښے د سنه ٢٢٣ع په خوا وشاکښے شامله شوی وی - او د دے علاقے « کشن شاه » به د ارد شیر صـــلاح ته غاړه ایښی وی -

ساسانی خاندان هم لکه د ارساسی خاندان په ایران کښے د څلور سوو کالونو نه زیات یعنی د سنه ٦٢٣ع پورے حکمران وو- په دغه کال د دے خاندان آخری باچا یزدګرد د نهاوندپه معرکه کښے د عربو مسلمانانو د لاسه تیښته اوکړه- او مرو ته لاړو- اوڅوکاله پس د هخامنشی باچا دارا سوم په شان د یو مقامی امیر د لاسه قتل شو- او د ایرانی سلطنت مغربی حصه په اسلامی سلطنت کښے شامله شوه - لیکن د دے سلطنت په مشرقی حصوکښے د تاریخ ډیر واقعات لاپه ظهوکښے راتلونکی وو-

د ساسانی سلطنت مشرقی پوله د اباسیند د غاړے پورے وه- په دے سلطنت کښے چه د کوشانی سلطنت کومے علاقے شاملے وے- هغه د افغانستان په یولویه حصه او ګندهارا مشتملے وے- دا علاقه یا صوبه به د « کشن شاهئ » په نامه یادیدله -او په ټول ساسانی سلطنت کښے به اهمه ګڼلے شوه ،او د دے په حکومت به د شهنشاه دلوری نه ولیعهد سلطنت ټاکلے شو او د رتبے په لحاظ به د دے صوبے حاکم په شهنشاه پسے دوهم سړے وو- او د شاه « کشن شاهان » په لقب به یادیدلو- د دے خبرے قرائن موجود دی چه اول شاه کشن شاهان به شاه پور اول وو - چه د خپل پلار آرد شیر اول ولیعهد وو- د « کشن شاهی » مرکز به په سیستان کښے وو- دا رواج د سنه ٣٦٥ع پورے قائم وو- د شاه پور اول نه علاوه د نورو بادشاهانو په وخت کښے به هم د دے صوبے په حکومت ولیعهد سلطنت ټاکلے شو - چنانچه د ساسانی بادشاهانو په لړکښے د شاه پور اول نه علاوه هرمز اول او بهرام اول او بهرام دوم هم په خپل خپل وخت کښے په دے عهده ټاکلے شوی وو.

د سنه ٣٦٥ع په خوا و شاکښے د ساسانی سلطنت دا مشرقی صوبه د دوی د سلطنت نه بیله شوه- او د دے وجه هغه فشار او تهاجم وو چه د شمال د خوا نه د سپین پوستی هُنز (هیاطله ) قبیلو د لوری نه محسوس کیدلو.

په ساسانی دوره کښے د ګندهارا او د دے مشرقی صوبے د خلقو د نسل ژبے او تهذیب و تمدن په حقله هم څه اشارے نۀ شی موندلے - سوا د دے نه چه د شاه پور اول د نقش رستم په کتبه کښے یو لفظ « ابګان » لیدلے شی - د غه شان یو لفظ ( راپاکان ) د شاه پور سوم په عنوانا تو او القابو کښے هم موجود دے او ځینے عالمانو دا خیال دے چه د دے دواړو لفظونو ( رابګان او اپاکان ) نه به مراد « افغان » وی -

# کیداریان یاکوچنی کوشانیان

دهپتل سلطنت د ضعف و زوال په ورځو کښې کوشانیان د مرکزی آسیا د یوې بلې قبیلې د حملو په په زد کښې راغلي وو۔ دا قبیله د ”سپین پوستي“ هُنز په نامه معروفه ده۔ د دې وحشي قبائیلو د حملو په نتیجه کښې د باختر کوشانیان د باختر نه په وتلو مجبور شول۔ او د هندوکش د جنوب په لور رانښکته شول۔ د دې کوشانیا تومشر یا سردار د چینی ضابطو مطابق کیدارا نومیده۔ چه یو مدبر او د کار سړې وو۔ او د ده په نامه دغه ټول کوشانیان د کیداریانو یاکوچنی کوشانیانو په نامه مشهور دی۔ دا خبره هم د فکر وړ ده چه د کیدارا د نامې ډیر مسکوکات موندلی شوی دی۔ نو دا احتمال هم کیدې شي چه د کیدارا په نامه به د یو نه زیات بادشاهان تیر شوی وی۔ دا هم امکان لری چه کیدارا به کوندې د دې خاندان نوم وی۔ به هر حال د دې سلسلې ټول بادشاهان د کیداریانو یاکوچنی کوشانیانو په عمومی نامه مشهور دی۔

په کومو ورځو کښې چه کیداریان د کاپیسا او کندهارا[1] علاقو ته رانښکته شول۔ په دغه ورځو کښې په دې علاقو کښې پنځه واړه واړه ریاستونه وو۔ دا ټول ریاستونه ”کیدارا“ په خپلو کښې مدغم کړل۔ او نسبتًا یو لوئې ریاست ئې تشکیل کړو۔ دا سې معلومیږی چه په دغه وخت کښې د کیدارا مقابله نۀ ده شوی۔ او د دې وجه دا ښکاریږی چه په کوشانیانو کښې دا باختری کوشانیان د زیات اهمیت خاوندان وو۔ د کیدارا د دې ریاست پوله د قبلې په لور تر بامیان د مشرق په لور تر اباسینه او د شمال په لور د هندوکش تر جنو بي لمنو غزیدلی وه۔ او د جنوب په لور د بنون علاقې پورې دا ریاست خور وو۔ په اغلبو احتمالاتو د دې ریاست مرکز اول کاپیسا وو ولې د سپین پوستي هونانو د حملو په اثر کښې د سلطنت مرکز ورستو پیښور[2]

---

[1] په چینی منابعو کښې د کندهارا لفظ د کن۔ تو۔ لو (KAN-THO-LO) په شکل کښې ضبط دې۔

[2] په چینی منابعو کښې د پیښور لفظ په فو۔لو۔شا۔فو۔لو (FAU-LEAU-CHA-FAU-LO) ضبط دې۔

ته منتقل شو -

دا یقیني معلومه نهٔ ده چه د باختر نه د کندهارا په لور د کیدار یانو مهاجرت کله واقع شوے دے - البته د « پرسی پولس » د یوے کتبے[1] نه چه د شاپور دوم د سلطنت په (۷۸) کال کښے لیکلی شوی - او د سنه ۳۵۶ء سره مطابقت لری - دا قیاس کیدے شی چه په دغه ورځو کښے (سنه ۳۵۶ء) کښے کابل د شاه پور دوم په قبضه کښے وو - او هغه د دے مرکز نه د کیدار یانو سره په جنګ کښے بوخت وو - په دے بنا دا اغلبه ده چه کیدار یانو به دګند هارا په علاقه کښے د (سنه ۳۵۶ء) نه وړاندے خپل ریاست تشکیل کړے وی - د دے قیاس مرسته د « امیا نوس مارسالی نوس » نوے یو رومی جرنیل (چه د شاه پور دوم سره د ماورالنهر په علاقو کښے په جنګو نو کښے ګډ وو») د لیکونو نه هم کیږی - دے وائی چه شاه پوردوم د سنه ۳۵۰ او سنه ۳۵۷ ترمینځه د خپل سلطنت د مشرقی سرحداتو د قبائیلو سره چه په دے قبائیلو کښے مهمے قبیلے "شیونی" (CHIONITAE -) او « ایوزونی » (EUSENIS) وے - په جنګونو کښے مصروف وو - مخکښے دا لیکوال وائی چه د « ایوزونی » نه مراد هم دغه کوشانیان دی - او «شیونی هم د کوچنی کوشانیانو یوه قبیله ده چه د کابل په اطرافو کښے اوسیدله او د دوی سردارا» ګرو مباتس (GRAMBATES) نومیده -

به هرحال دا سے معلومیږی چه د خپل نوی ریاست د تشکیل نه پس کیداریان څه لږه موده پس د شاپور دوم د حملو په زد کښے راغلل - او د دے حملو په وجه د کیدار یانو ریاست د ګند هارا په علاقه کښے محدود شو - په اغلبو احتمالاتو د سنه ۳۵۷ یا سنه ۳۵۸ په حوا وشا کښے کیداریان د ساسانی حکومت باجګذار شول - لیکن دا سے معلومیږی چه د دوی دا محتاجی زمانه ډیره اوږده نهٔ شوه - او دوی زر د ساسانی حکومت نه خود مختاری حاصله کړه - او د سنه ۳۶۸ په حوا وشا کښے کیدارا په خپله د « کشن شاه » لقب اختیار کړو - او ګند هارا او ملحقه علاقو مستقل حکمران شو -

کیدارا اګر چه په عارضی طور د ساسانی حکومت نه خود مختاری حاصله کړه لیکن د سپین پوستی هونانو حملے په دوی بیا شروع شوے - د دوی دا حملے په اغلبو احتمالاتو

---

[1] په دے کتبه کښے د کابل لوئ قاضی چه سلوک نومیده دا دعا کوی چه شاپور دوم دروغ جوړ کابل ته بیا راشی -

په پلیبور باندے هم کیدلے[1] - د دے جنګونو په نتیجه کښے کیدارا په خپل صدرمقام کښے په خپل ځائے خپل ځوئے مقرر کړو - او د حمله آورو سره د جنګونو په دوران کښے غالباً چه د کابل په علاقه کښے مړ شو -

د کیدار د دے ځوی نامه معلومه نهٔ ده - البته د مسکوکاتو په شهادت د دے خاندان بل باچا د " پیرو " په نامه څرګند دے - او قیاس کیدے شی چه دا سړے به د کیدارا ځوئے وی - د سپین پوستی هونانو د دے حملے په نتیجه کښے ساسانی حکومت بیا په کیدارایانو خپل سیادت قائم کړو - او د ګندهارا ریاست د ساسانی سلطنت یوه باجګذاره صوبه شوه - دا وضعیت د " پیرو " نه پس د ورهران یا بهرام په عهد حکومت کښے هم قائم وو - " ورهران " د " پیرو " جانشین ګڼلے شی - په ګندهارا باندے د دے خاندان د حکمرانئ زمانه په یقینی ډول نهٔ ده متعین شوی - البته د مسکوکاتو په شهادت دا قیاس ممکن دے چه د دے خاندان حکومت به په دے علاقو کم و زیات سل کاله دوام لرلے وی -

د کیدارا د خپل نوم او د دے خاندان د نورو باچایانو مسکوکات عموماً د سپینو زرو او نازک دی - د دوی څنے مسی مسکوکات د بنوں په علاقے کښے هم موندلی شوی دی. د کیدارا مسکوکات عموماً د شاه پور دوم د مسکوکاتو په شان دی - د سکے په یو مخ د بادشاه تصویر دے - چه په برهمی رسم الخط کښے پرکیدارا کوشان شاه لیک دے. د سکے په بل مخ د آتشکدے تصویر دے - او د آتش کدے دواړه طرف ته او رته مخامخ دوه محافظین توره په لاس ولاړ ښکاری -

د کیدارایانو د مسکوکاتو نه دا خبره څرګندیږی چه په دے زمانه کښے ساسانی تهذیب وتمدن بیا د ګندهارا ترعلاقے راخور شوے دے. په دے دوره کښے د کوشانیانو د زمانے په لباس او تمدن کښے نمایان فرق معلومیږی - دغه وخت په لباس کښے تنګی چستی او زیب و زینت زیات شوے دے - د زیوراتو استعمال هم عام معلومیږی - دغه شان په مسکوکاتو باندے د آتش کدے تصویرونه هم د دے خبرے مرسته کوی چه زردشتی مذهب به بیا ترڅه حده په دے علاقو کښے خپل اثرو نفوذ پیدا کړے وی - او دا خو معلومه ده چه د کوشانیانو د عظمت و زوال په ورځو کښے بده مذهب هم مخ په زوال وو -

---

[1] په پلیبور باندے د سپین پوستی هونانو حمله (په څلورمه صدئ کښے) د چینی زائر فاهیان د شهادت نه هم معلومیږی دے وائی چه دیفتلیانو یو بادشاه د مهاتما بده د کچکول د تښتولو کوشش کړے وو. ولے د څنے عجیبه واقعاتو د ظهور په وجه په دے کښے کامیاب شو.

# افتالیت (یفتلیان - هیاطله) یا سپین پوستی هنز

د شپږمې صدۍ ق - م نه واخلې د څلورمې صدی (م) تر آخره پورې چه څومره هماله آور قامونه د افغانستان او کندهار سیمه زمکه راغلی دی - همغه ټول د سکندر مقدونوی نه علاوه ایرانی النسل وو - ان چه باختری یونانیان هم اگرچه هسې په نوم خو یونانیان وو - ولې د باختر داوږ دې استوګنې په وجه د دوی وینه او تهذیب تر ډېره حده د ایرانی نسل او تهذیب نه متأثر شوې وو - چه دوی ته ایرانی النسل وئیل بې ځایه نۀ دی - لیکن د پنځمې صدۍ (م) په آغاز کښې چه کوم قام د افغانستان د کندهارا په مزکه راغلو - همغه د وسط ایشیا د مرکز نه راوتلې وو - دغه قام د افتالیت یا سپین پوستی «هنز» په نامه مشهور دے -

د دے قام ذکر په اول وار چینی لیکوالو د پنځمې صدۍ (م) په آغاز کښې کړے دے او دا خلق ئې د «ایتا یا اِپتا» (EPTA) په نامه یاد کړی دی - دغه الفاظ بازنطینی لیکوالو د خپلې لهجې او ژبې مطابق د «افتهالی توی» او «تهالی توی» (او) «ابدلوی» په لفظونو ظاهر کړی دی - هم په دے ډول فارسی او عربی لیکوالو دا لفظونه د هیطل یا هیطل او د جمع په شکل کښې ئې د هباطله او هیاطله په لفظونو ذکر کړی دی - او په آخر کښې هندی لیکوالو د «سپتیا» اونا «یا» شوتا اونا» په الفاظو لیکلی دی. په سنسکرت ژبه کښې «سپتیا» او «شوتا» په معنی د سپین او «اونا» په معنیٰ د «خارجی» دے. نو د مرکب لفظ معنیٰ «سپین پوستی خارجیان» کیدے شی - کۀ چرے په ټولو لفظونو غورا وکړے شی نو دا سے معلومیږی چه په اصل کښې به دا لفظ «پیتا» یا «اپتل» او یا د دے په شان یو لفظ وو - «دائرة المعارف برطانیکا» هم د دے لفظ اصل اِپتل یا هپتل او یا د دے په شان یو لفظ ګڼي - په پښتو کښې «اتل» د پهلوان په نامه او په فارسۍ کښې یل د طاقتور په معنیٰ موجود دی - بنا په دے دا وئیلے شو چه دا لفظ به په اصل کښې «اپتل» وو او وروستو به افتال او بیا «یفتال» شوے وی - په افغانستان کښې تر نن ورځې «یفتل» د

مقام په مفهوم او « یفتلی » د « یفتلی » داو سیدونکو په معنیٰ مروج دی .

چینی لیکوالو ددے خلقو (افتالیت) ذکر دوسط ایشیا د یو مقتدرے قبلے (ژوان ژوان) چه په یورپ کښے دآواریانو ( AVARS ) په نامه مشهوره ده - په ضمن کښے کړے دے - دوی داسے وائی چه دا (افتالیت) دآواریانو « همسایه او خدمتګار وو - او ددوی د مهاجرت سبب دا بیانوی چه په دوی باندے دخپلو ناټیکانو (آواریانو) کاربیګار دومره زیات وو چه د دوی دزغم او برداشت نه بهر شو - او دوی په مهاجرت مجبور شول .

دآواریانو د سلطنت مرکز چرته په منګولیا کښے یو ځائے وو - دے خلقو خپل سلطنت د څلورے صدئ په مینځ مینځ کښے تشکیل کړے وو - دآواریانو ژبه هم دمنګولیا یو ژبه وه - دوی به خپل باچا ته « خاخان » یا خاکان وئیل - افتالیت د دوی همسایه او ددوی د ماتحتو قبائیلو په حیثیت د دوئ سره استوګن وو - دغه لفظ خاخان یا خاکان چه وروستو په استعمال کښے صرف « خان » پاتے شو - « یفتلیانو » دخپلو ناټیکانو (آواریانو) د نورو دودونو دستورونو سره دخپل مهاجرت په دوران کښے دخپل ځان سره باختر ته راوړو -

افتالیت په اصل کښے څوک وو؟ څه رنګ چه د « یوچی » قبائیلو (کوشانیانو) داصل نسل مسئله تر ډیرے مودے په تیارهٔ کښے وه - دغه رنګ دافتالیت قام د نسل موضوع هم روښانه نه وه - لیکن دمسلسل تحقیق او څیړنے په رڼا کښے که په یو طرف دا اومنلے شوه چه یوچی قبائیل (کوشانیان) د هنداروپائی سیتین قبائیلو یو ښاخ دے - نو په بل لوراکثر عالمان دے عقیدے ته مائل دی چه افتالیت هم دیوچیانو یوه څانګه وه - او دیوچیانو دیوے څانګے په حیثیت داخلق هم په هندی اروپائی « سیتین » قبائیلو کښے حسابیدلے شی.

پروکوپس (PROCOPIUS) بازنطینی لیکوال چه د پنځمے صدئ (م) په آخر کښے زیږیدلے او په کال (۵۶۲ م) وفات شوے دے - اول مؤرخ دے چه دافتالیت قام سپینے څرمنے او متمدن ژوند دهغهٔ توجه دے قام ته کړزولی وه - او هغهٔ داخلق (افتالیت) دزیرپوستی « هونانو » نه چه په یورپ ئے حملے کړی دی ځان له جداخلق ګڼلی دی - دے داسے وائی چه دا (افتالیت) په څرمنه سپین په کړهٔ وړهٔ کښے ښکلی او د مدنیت نه واقف وو - او ددوی ژبه د اصلی هونانو نه بیله وه - هم په دے دول یو بل انګریز لیکوال « مسټرپارکر » په خپل کتاب (د تاتار زرکاله) کښے هڅکله په یو موقع هم افتالیت د هوانګ نو یا زیرپوستی هونانو یا نورو مغلی او ترکی قبائیلو سره نهٔ دی غلط ملط کړی ، او په صریح دول ئے داخلق د یوچی

قبائیلو ښاخ کښلي دي[۱]

« سرپرسي سائیکس » د تاریخ افغانستان او تاریخ فارس مصنف هم د خلق (افتالیت) د یوچي قبائیلو یو ښاخ شمیري. نوموړي لیکوال په خپل تاریخ افغانستان جلد اول کښي د افتالیت یا سپین پوستي هونانو په باب کښي داسي وائي: « چین عالمانو موږ ته دا اطلاع راکوي چه د سترو یوچیانو یو ښاخ چه په « هوا » یا « هواتون » موسوم وو. د چین د دیوار اعظم په شمال کښي استوګن وو. دا خلق د « ژوان ژوان » یا هغه کسانو چه په یورپ کښي وروسته د آواریانو په نامه مشهور شول تابع وو. « هوا » یا « هواتون » قبیلي ورو ورو عروج او طاقت حاصل کړو. او د خپلي شاهي کورنۍ نوم ئې « یه تها » (YETHA) او تاکلو. او د دې وخت نه دا اصطلاحي لفظ « یتها » پیدا شو. او بیا دا نوم (افتالیت) یوناني مورخینو د دې خلقو د پاره استعمال کړو. وروستو دا خلق فارسي مؤرخینو د هیطل او بازنطیني لیکوالو د سپین پوستي هونانو په نامه یاد کړل. « پروکوپیس » د دوئ په حقله داسي وائي چه د هونانو په اولس کښي یواځې دغه خلق وو. چه غړمن ئې سپینه او خط وخال ئې ښکلي وو. او د دوي ژبه هم د هندو اروپائي ژبو نه یوه ژبه وه. دې خلقو د (ختا) نه د قبلي په لور د سنه ۴۲۵ په حواو شا کښي حرکت اوکړو. او د یو سلطنت په تشکیل کښي کامیاب شول چه د ننني ترکستان نه د فارس تر پولو پورې خور وو. او په دیرشو صوبو چه د موجوده افغانستان علاقې د هغې نمائندګي کوله شي، مشتمل وو. » هم په دې ډول د نامتو مستشرق « کوینستن سن » او انګریزي محقق « مسټر » ونسنټ سمتهه » دا خلق (افتالیت) د زیړ پوستي هونانو نه جدا او په دې بنا د دوي هم نسل نه ګڼي. او روسي فاضل مسټر بار تهولډ دوي د یوچي یا غازي قبائیلو (چه دا دواړه قبیلي په اصل کښي یو دي) یو ښاخ شمیرئ[۲]. اګر چه ځینې عالمان داسي هم دي چه د هغوي په خیال کښي دا خلق د ترکي قبائیلو یوه څانګه ده. لیکن دا ترکي قبائیل هم په حقیقت کښي د هغه پخوانو خانه بدوشو قبائیلو یو ښاخ وو. کوم چه د هونګرهانو په نامه مشهور وو او د ستین په نامه هم معروف دي.

به هر حال په دې ټولو شهادتونو د غورکولو نه پس به داسي اووایو چه افتالیت

---

۱ تاریخ افغانستان جلد دوم ص ۴۴۵-۴۶

۲ تاریخ افغانستان جلد دوم د ښا غلی کهزاد ص ۴۵۰

د سپینې څرمنې او ښکلي خط و خال خاوند وو. او د تمدني ژوند نه خبر وو. د دوی ژبه هم د هند و اروپائي ژبو نه یوه ژبه وه. او د تخاري یا یوچي قبائیلو یوه څانګه وه. هرکله چه یوچیانو د هونګزهانو سره د جنګونو د یو سلسلې نه پس مهاجرت اختیار کړو نو په مرکزي آسیا کښې دوی دوه څانګې شوې. چه د یوې څانګې نامه تهایوچي یا "ستر یوچیان" وه. دا څانګه درجه په درجه د طارم، سیردریا او آمو دریا په کښتو کښې داخله شوه. او په آخر کښې باختر ته راغله. او د خپلې یو قبیلې کوی. شانګ په نوم ئې یو سلطنت تشکیل کړو چه وروستو په کوشان مشهور شو. ولې د دوی بله څانګه د "کوچنی یوچیانو" په نامه تر ډیرې مودې د وسطي آسیا په غرونو کښې مقیمه وه. ولې دوی هم په قلاره د خپلو ورانو نه هم نامه خلقو لا راونیوله. افتالیت د دې کوچنی یوچیانو یا تخاري قبائیلو یوه څانګه وه. چه د سنه ۳۸۵ او سنه ۴۲۵ په مینځ مینځ کښې په باختر کښې داخله شوه. او په دغه زمانه کښې د باختر په علاقه یو سلطنت تشکیل کړو. اګرچه د کوشانیانو په نسبت د دوی د عظمت او اقتدار دوره ډیره لنډه کنړه وه.

د سنه ۴۲۵ په خوا و شا کښې یفتلیانو د باختر په علاقه کښې خپله قبضه مکمله کړه. او د دې مرکز (باختر) نه ئې د جنوب مغرب په لور په ساساني سلطنت حملې شروع کړې. او د جنوب مشرق په لور ئې په وادي کابل او ګندهارا.

د ایران برخلاف د یفتلیانو اوله حمله په سنه ۴۲۷ کښې وه. په دې وخت کښې د ایران په ساساني بادشاهانو کښې پنځم بهرام حکمران وو. نوموړې د بهرام ګور په نامه هم مشهور دې. د "مرو" په خوا و شا کښې د ساساني فوځونو او یفتلیانو ترمینځه یو شدید جنګ اوشو چه د یفتلیانو په شکست ختم شو. او په جنګ کښې د یفتلیانو بادشاه اووژلې شو. او د هغه تاج د بهرام ګور په حکم د آذربائیجان آتشکدې ته د نذر په ډول ورکړې شو. بهرام ګور په سنه ۴۳۸ کښې وفات شو. او د هغه نه پس د هغه ځوئې یزدګرد دوم تخت نشین شو. د ده په وخت کښې یو ځل بیا د ساسانیانو او یفتلیانو ترمینځه شدید جنګ اوشو. دا ځل حمله آور ساسانیان وو. په جنګ کښې ساسانیانو شکست ومونده او د دوی د سلطنت لویه حصه د یفتلیانو په قبضه کښې راغله. یزدګرد دوم په کال سنه ۴۵۷ کښې وفات شو.

د یزدګرد په مرګ د هغهٔ په ځامنو کښې د تخت نشینۍ د پاره جنګونه شروع شول. د هغهٔ یو ځوئې "فیروز" د یفتلیانو نه د کومک خواست اوکړو. او د دوی په کومک ئې د ایران تخت حاصل کړو. او د خراج وعده ئې اوکړه. ولې وروستو بې لوظه شو. په دې وجه یفتلیانو بیا په ایران یرغل اوکړو. په جنګ کښې فیروز اووژلې شو. (سنه ۴۸۴). د یفتلیانو او ایرانیانو ترمینځه دا جنګ ډیر شدید او د نتائجو له مخه د ایران په حق کښې ډیر

تباه کن ثابت شو. د ساسانی سلطنت وقار او عظمت ته لویه صدمه اورسیدله. دغه وخت د ساسانیانو سلطنت د یفتلیانو په رحم وکرم قائم وو.

په سنه ۴۸۷ کښې د ایران په تخت قباد کښیناست. د قباد د زمانے مشهوره واقعه د «مزدک» ظهور دے. دا سړے د یو نوی مذهب بانی وو. چه اساسنا د اشتراکی نظریاتو په شان وو. یعنې د ده په اصولو کښې زر، زمین او زن درے واړه د ټول اولس مشترک مال ګڼلے شو. په ابتدا کښې قباد هم دا نوے مذهب قبول کړو. ولے خپلو امیرانو ورته بغاوت اوکړو. په دے وجه یوځل بیا یفتلیانو ته په ایرانی سلطنت کښې د مداخلت موقع په لاس ورغله. او د دے په نتیجه کښې ساسانی سلطنت د یفتلیانو د یو باجګذار، بے وقاره ورکوټي ریاست حیثیت اختیار کړو. دا وضعیت د پنځمے صدیٔ میلادی د نیمے نه د شپږمے صدیٔ (م) ترنیمائی قائم وو. اګرچه په دے دوران کښې په ساسانیانو باندے د یفتلیانو د باؤ اوګرفت کمزورے وو. لیکن د دے وجه دا وه. چه یفتلیان د هند په فتوحاتو کښې مصروف وو. او د هند فتوحات دوی ته د ایران په نسبت زیات عزیز او فائده مند ښکاره کیدل.

لکه چه د مخه مو وئیلی دی یفتلیانو د خپل مرکز باختر نه د هندوکش په دواړو غاړو خپلو حملو ته دوام ورکړے وو. په دے وخت کښے په وادی کابل او ګندهارا کښې کیداریان یا کوچنی کوشانیان حکمران وو. یفتلیانو هم هغه رنګ چه په جنوب قبله د ساسانیانو مضبوط سلطنت ته دیکه ورکړه. د غه رنګ ئے د کیداریانو نسبتا کمزورے ریاست هم اورغړولو دا کیداریان د چترال او ګلګت غرونو ته اوتښتیدل. او تر هغه وخته په دے غرونو کښې میشته وو چه د یفتلیانو سلطنت سقوط اوموند. د غه وخت کښې دا خلق بیرته راغلل او د کابل شاهانو یا رتبیلانو په نامه ئے سلطنت تشکیل کړو. چه د عربو د حملو په وخت کښې د ګندهارا، وادیٔ کابل او اراکوزیا په منطقو کښې قائم وو. د ګندهارا په علاقه د یفتلیانو قبضه د سنه ۴۵۵ په خوا وشا کښې شوی وه.

یفتلیان (رافتالیت) په خپل مینځ کښې په مختلفو قبیلو کښې ویش وو. او څه رنګ چه دوی په ابتدا کښې د «اواریانو» فقیرنامه او همسایه خلق وو. دغه رنګ په دوی کښې یوا هم عنصر دا سے هم وو چه هغه په دوی کښې د ځنو قبیلو نه کم حیثیت وو او د همسایه او ملا تړ په حیثیت د دوی ملګری وو. دا قبائیل د «ګوجرو» په نامو مشهور وو. او دا ملی یفتلیانو فقیر نامه ګڼلے شو. په دے ډول په اصلی یفتلیانو کښې ځنے دا سے قبیلے هم وے. چه هغوی د وادیٔ کابل او ګندهارا د حملو په دوران کښې د هندو

کش په جنوبي علاقو کښې په مستقل دول استوګنه شوې وې. په دې قبیلو کښې یو مهمه قبیله د «زاول» په نامه یا دیدله. چه د موجوده غزنی او قندهار ترمینځه علاقه کښې میشته شوی وه. دغه علاقه وروستو د دوی په نامه د «زابل» یا «زابلستان» په نامه مشهوره شوه. زابلي قبیله په افغانیت او لس کښې یو مهمه قبیله وه او دا سې معلومیږی چه په ګندهارا باندې د قبضې کولو نه پس چه د دې علاقې د حکومت د پاره د مرکزي حکومت له خوا کوم واشراځ یا «تګین» ټاکلې شوې وو. هغه هم د دې قبیلې او په غالبو احتمالاتو په نامه «تورامانا» وو. داسړې هسې په نوم خو د باختر د یفتلي حکومت ما تحت وو. ولې په حقیقت کښې د ګندهارا او وادئ کابل یو مستقل حکمران وو. د هغه په فتوحاتو کښې د دهٔ قوم ډیر معروف دې.

په هند باندې د یفتلیانو حملې د ۵۵۵ء نه پس شروع شوې. د دې حملو د پاره د یفتلیانو د مرکز د ګندهارا علاقه ده. په دغه زمانه کښې به هند کښې د «ګپتا» خاندان حکومت وو. او په دې خاندان کښې «سکانداګپتا» نومې یو بادشاه حکمران وو. «سکانداګپتا» په ۵۶۷ء کښې وفات شو او د دهٔ د جانشینو په وخت کښې د یفتلیانو د حملو په نتیجه کښې د دوی سلطنت په وړو وړو ریاستونو کښې تقسیم شو. او په اکثره علاقه یفتلیانو قبضه اوکړه. د یفتلیانو د احملې د «تورامانا» په سرکردګۍ کښې کیدلې. «تورامانا» د خپل نوی مقبوضه سلطنت صدر مقام «ساکالا» (سیالکوټ) مقرر کړو. او د دې ځائې نه ځ د «ګپتا» په سلطنت حملو ته دوام ورکړو. او په لږه موده کښې ټول شمالي او وسطي هند اونیولو. «تورامانا» په ۵۰۲ء کښې مړ شو. د دهٔ د یو کتبې نه چه د کهیوړې (پنجاب) په خوا و شاکښې موندلې شوی ده. دا معلومیږی چه دهٔ د «مهاراجا» خطاب اختیار کړې وو. او شاید چه دغه وخت به ځ د مرکزي حکومت نه خود مختاري حاصله کړې وی. په دې کتبه کښې د دهٔ نوم داسې ذکر دې:

«مهاراجا تورامانا ساهاجاودلا». په دې لفظونو کښې د «سا» نه مراد «شاه» او د «جاودلا» نه مراد هم هغه پخوانی لفظ زاول دې. چه وروستو زابل شوې دې. پس دا الفاظ داسې هم ویلې شو چه («مهاراجا تورامانا شاه زابلی») د دې کتبې نه دا هم معلومیږی چه د تورامانا قبیله زاولي ده. او د غزنی او قندهار علاقه د دې قبیلې د استوګنې په وجه په دې نامه وروستو په زابلستان مشهوره شوی ده. د «تورامانا» د مرګ په وخت کښې یفتلیانو ګرفت په هندی علاقو بنهٔ مضبوط وو. او د هغه زمانې په

حکومتونو کښې د دوی طاقت په ټولو کښې زیات وو۔

د تورامانا نه پس د هغهٔ ځوی حکمران شو۔ چه د «مهیرا کولا» یا «مهیرګل» په نامه معروف دے۔ دهٔ هم د خپل مرکز (ساکالا) نه خپلو فتوحاتو ته وسعت ورکړو۔ او د هند په زمکه کښې د خپلو فتوحاتو لمن اوږده کړه۔ کشمیر ئې هم فتح کړو۔ د دهٔ د حملو په نتیجه کښې د ګپتا سلطنت بیخی سقوط او موند۔ لیکن د مهیرګل د حکومت زمانه د ظلم وحشت یوه خوفناکه دوره وه[1]۔ د دهٔ ظلمونه او ناکردے د زغم نه بهر شوے۔ آخر د هند واړهٔ واړهٔ ریاستونه د «یاسود هارمن» نومے یو راجا په سرکردګئ د «مهیرګل» برخلاف متحد شول۔ او د دے هندی راجګانو اتحادی فوځونو په سنه ۵۲۸ء کښې «مهیرګل» ته شکست ورکړو۔ او هغه کشمیر ته اوتښتیدهٔ۔ ولے هلته ئې هم د ظلم دروازے پرانستلے۔ دا سړے په سنه ۵۴۳ء کښې مړ شو۔ او د دهٔ په مرګ په هند کښې د یفتلیانو حکومت سقوط اوموند۔ ولے په هند باندے د یفتلیانو حملے د سنه ۵۶۵ء پورے جاری وے۔ د دغه وخت کښې د یفتلیانو دے نوی حکومت د ترکانو د لاسه سقوط اوموند۔

**افتالیت او پښتانه:**۔ د ننني زمانے د تحقیقاتو په رڼا کښې دا خبره معلومه شوی ده چه د هند راجپوت قام د هغه بیرونی حمله آور قامونو اولاد دے کوم چه د پنځمې او شپږمې صدئ په مینځ مینځ کښې په هند باندے حملے کړے او بیا په هند کښې استوګن شوی او هندی تهذیب او برهمنی مذهب ئې اختیار کړے وهٔ۔ په دے دول ځنے مغربي لیکوال چه د پښتنو د تاریخ او اصل نسل څیړنه ئې کړی ده دے عقیدے ته مائل دی چه چونکه پښتانهٔ قبائیل او د هند راجپوت په خپلو قامی خصوصیاتو او قبیلوی دودونو دستورونو او امتیازی روایاتو کښې یو تر بله حیرت انګیز مشابهت لری۔ نو څه رنګ چه د هند د استوګنې په وجه د پښتانهٔ نسل د راجپوتو په شکل کښې موجود دے۔ او د یفتلیانو همسایه قبائیل «ګرجو» د ګوجرانو په نوم تراوسه په خپل اصلی او پخوانی نوم

---

[1] دا مشهوره ده چه مهیرګل د خپل صدر مقام ساکالا (سیالکوټ) په ښار کښې دوه سوه فټه اوچت یو برج یا مینار جوړ کړے وو۔ د دے برج د سر نه به ئې هاتیان سکته راګذارول او د هغوی د ځنکدن د لوځو پوځو تماشه به ئې کوله۔ او په دے به ډیر خوشحالیدو۔ د ظلم او وحشت د داسې واقعات په کشمیر کښې هم د هغهٔ سر منسوب دی۔

په سنه ۱۹۰۳ء کښې د قلعه سیالکوټ په کنډ والو کښې د «تورمانا» او «مهیرګل» د زمانے څه سکوکات موندلی شوی دی۔

باقي دي. دغه رنګ چونکه د خپل سلطنت د عروج او بیا د سلطنت د سقوط نه پس افتالیت اولس په ګندهارا او د پښتو په مزکه هم میشته شوي وو. نو لازماً د پښتنو وینه او نسل به هم د یفتیانو د نسل نه متاثر شوے وي. په دے لړ کښې ښاغلی کیرو په خپل تاریخ "دي پټهانز" کښې داسې وائي:-

ګندهارا یو داسې علاقه وه چې د هند د فتوحاتو د پاره د یفتلیانو مرکز وو. په دغه علاقه کښې یعنې د دیر، سوات په غرونو کښې او د یوسف زو، مندنو په سیمه کښې تر اوسه ډیر ګجران آباد دي. چنانچه د مردان په علاقه کښې د ګوجرو یو لوئے کلے د "ګوجرو ګړهۍ" په نامه مشهور دے. دغه شان د سدوم د علاقې په قطبي غرونو کښې د ګوجرانو بې شمیره بانډې دي. چې د خانانو فقیران او همسایه دي. لکه څه رنګ چې د دوی اسلاف پخوانئ زمانه کښې د یفتلیانو فقیران او همسایه وو. د خان خطاب هر یو پښتون د حق په ډول د خپل ځان سره استعمالوي. نو دا خبره ناقابل قیاس نۀ ده چې هر کله یفتلیانو خپل نسل د راجپوتو په شکل کښې په هند کښې پریښے دے. نو په ګندهارا کښې به ئې هم ضرور پریښې وي. ځکه ګندهارا هم د دے خلقو یو لوئے مرکز وو." وړاندې دا ښاغلے داسې وائي:-

دا خبره هم یاده ساتل پکار دي چې د یفتلیانو د حکومت د سقوط نه څه موده پس د ساسیانو حکومت هم سقوط اوموندۀ. او ګندهارا او د دے سره ملحقې علاقې د اسلام نه اګاهو څلورو صدو پورې د هغه هندوانو په قبضه کښې وې چې په تاریخ کښې د هندوشاهانو په نامه مشهور دي. په دے اوږده زمانه کښې په هند باندې څه باقاعده حملې نۀ دي شوي. او خلقو به دا موقع موندلے وي چې دوي په مستقل ډول استوګنه اختیار کړي. او دا خبره هم یاده ساتل پکار دي چې دا یفتلیان نېکلي او بې غمه خلق وو.

د خپلې نظرې په تائید کښې دا ښاغلے وړاندې وائي " د یفتلیانو د حملو نه سو و نه کاله اګاهو موږ د پښتنو د څینو قبائیلو نامې په خپل اصلي او ممکن شکل کښې اوریدلي دي. او د پښتو ژبې بهترین عالمان دا عقیده لري چې د دے ژبې (پښتو) د موجوده ویونکو اسلاف په هیڅ صورت کښې د ساکا قبائیلو نه وروستو نۀ دي راغلي . یا داسې به او وایو چې دا خلق د یفتلیانو د راتلو نه څه څلور سوه کاله اګاهو په دے علاقه کښې استوګن وو. په دے بنا دا ښاغلے د دے امکان اظهار کوي چې د یفتلیانو غلبې او تسلط به د دے خلقو (پښتنو) ساخت او جوړښت ته یو بل استر وراچولے وي. او څه رنګ چې د یفتلیانو

فقیرنامه پخوانی "کوجران " . د اوسنی گوجرانو په شکل کښې موجود دی . د غه شان د دوی هغه پخوانی نانیکان (یفتلیان) به هم د پښتنو په خانخیلو کښې موجود وی . او اکثر و پښتنو قبیلو د خان خیلو (لکه په مثال کښې د یوسف زو) اسلاف به هم هغه پخوانی یفتلیان وی. او په غالبو احتمالاتو د یفتلیانو وینه به د کندهارا د میدانی علاقو په پښتنو کښې د غرنیو پښتنو په نسبت زیاته وی . یا داسې به اووایو چه د شجره نویسو په الفاظو کښې به موبږ ته په پښتنو کښې د یفتلیانو ځینې نښانې د سربن په اولاد کښې کتل پکار دی نه د کرلانړ په اولاد کښې .

د پښتنو (با لخصوص هغه پښتانه چه دوی ورله افغان وائی) په وینه او نسل کښې د یو اهم عنصر په ډول د یفتلیانو د وینې د ورکړې بدلو د مفروضې به مرسته کښې داښاغلې فاضل وړاندې وائی . د غلجیانو مورثِ اعلیٰ " شاه حسین " چه د بی بی متو خاوند او د شیخ بیټن زوم کنلے شی . د ځینے مورخینو د وینا مطابق نسلاً ترک وو . او که ترکی النسل او نه شی کنلے بیا هم په اتفاق سره افغان خو نه وو . یعنی براه راست د قیس عبد الرشید په اولاد کښې نه وو . او اګرچه د غلجیانو د نسل په حقله په یقینی ډول سکوته وینا ګرانه ده. لیکن په اکثرو احتمالاتو د دوی اسلاف هم هغه افتالیت دی چه هغوی د پنځمې صدی د آغاز نه د ایران نه واخلے تر هنداه پورے علاقے د خپل لښې کنی عظمت و اقتدار په نتیجه کښې متاثره کړی دی :

د ښاغلی کیرو دا پورته نظریه د تاریخی شواهدو په رڼا کښې ترڅه حده مرسته موئ. ځکه چه یفتلیان هم د هغه قامونو نه یو قام وو . کوم چه د پښتنو په وطن د تاریخ په مختلفو دورونو کښې حملے کړے وے . او په دے علاقو کښې میشته شوی وو . د یفتلیانو نه وړاندے هم ډیرو قامونو د پښتنو په علاقه اوکند هارا خپل تسلط قائم کړے وو . دا ظاهره ده چه د خپل تسلط او اوږدے یوځائے استوګنے په وجه به د پښتنو وینه او نسل د دے قامونو نه متاثر شوے وی . دا هم ډیره ممکنه ده چه د یفتلیانو د حملے په وجه به د هغه پخوانو قامونو اثرات ترڅه حده تت شوی او یا ورک شوی وی . ولے د دے باوجود زما په خیال کښې د ښاغلی کیرو دا وئیل د مبالغے نه خالی نهٔ دی چه د کندهارا د پښتنو وینه او نسل به د یفتلیانو نه دومره متاثرشوی وی چه د دوی خط وخال اوکړهٔ وړهٔ ته به ئے یونوے استر ورا چولے وی .

داخبره د فکر وړ ده چه یفتلیان څه ځ میږی هم نهٔ وو چه د ایران نه واخلے د هند

پورې د دومره لوئې او وسیع خطې د مختلفو قامونو وینه او نسل به ئې دومره متاثر کړی وی. چه د هغوی جسمانی ساخت ته به ئې یو نوی پوڅه ورکړی وی. یفتلیان لکه چه معلومه ده په قبیلو کښې ویش وو. د دوی اکثر قبیلې د باختر په علاقه کښې او د هندوکش په جنوبی لمنو کښې میشته شوې وې. او نن ورځ د دې خلقو اولاد د نورو خلقو سره داسې ګډې وډ او خلط ملط شوې دې چه خپل قامی خصوصیات او امتیازات ئې ضائع شوی دی. البته د بدخشان په علاقه کښې په یفتل نومې کلی کښې افتالیت د نورو علاقو په نسبت ډېر کم او بې آمیزش پاتې شوی دی. او د دې خلقو نه د افتالیت اولس په حقله درسته اندازه لګیدې شی. د غه شان د ګندهارا علاقه هم د نورو ټولو حمله آور قامونو په شان د هند د حملو د پاره د یفتلیانو هم د عبورو مرور یو اهم شاهراه وه. نو ممکنه ده چه په دې علاقه کښې به هم د دې اولس (افتالیت) څنې خلق میشته شوی وی.

لکه چه وئیلې شوی دی په یفتلیانو کښې زیات او اهم عنصر د ګوجرانو په نامه مشهور وو. دا خلق د هند په شمالی غربی علاقو کښې بالخصوص په مشرقی پنجاب او راجپوتانه کښې استوګن شوی وو. او د نن ئې زمانې «راجپوت» «جاټ» او «ګوجران» د دې خلقو اخلاف ګڼلې شی. اګرچه په خپله راجپوت قام دا نظریه نه تسلیموی او دا دعوی لری چه دوی د ویدی زمانې د هغه کشتریانو اولاد دی. کوم چه د زمانه شجاعت په ورځو کښې د سورج بنسی او چندر بنسی خاندانونو په نامه مشهور وو. په دې ډول د افتالیت قام دا مهم عنصر (ګوجران) د پښتنو په غرڅیزه علاقو کښې هم آباد شوی وو. او د دوی اولاد نن ورځ هم د زرګونو په شمیر کښې په دې غرڅیزو علاقو کښې د ګوجرانو په نامه موجود دی. دوی خپل مخصوص لباس او مخصوصه ژبه لری. او زما په خیال کښې د دې وجه دا کیدې شی چه دا پخوانی ګوجران د پښتنو د علاقو نه لرې په غرڅیزو علاقو کښې هم په خپل پخوانی حیثیت کښې د فقیرنامې او پره خلقو په ډول استوګن شوی او د پښتنو سره په اولسی او مجلسی تعلقاتو کښې نه وګډ لی شوی. د غه وجه ده چه دوی په خپل اصلی او قدیمی شکل کښې باقی پاتې شوی دی او نه صرف د افتالیت قام د تسلط او غلبې یادګیرنه کوی. بلکه د هند د راجپوت جاټ او ګوجرانو سره د هم قومیې او هم نسلیې مرسته ترینه هم کیږی. د سوات په غرڅیزو ګوجرانو کښې نن ورځ داسې هم خیلونه او ټبرې موجودې دی. چه هغه د هند په راجپوتو کښې هم موجود

دی لکه په مثال کښې چوهان ، راټهور او جاټ وغیره . د دے نه دا قیاس د یقین درجې ته رسی چه د سوات د غرثیزو علاقو ، چوهان خیل ، ګوجران او د هند ، چوهان ، راجپوت په یو خلق وی .

لیکن دا فنتالیت اولس هغه خلق ... کوم چه د پښتنو په مینځ کښې په میدانی علاقو کښې ځائے په ځائے په لږ لږ شمیر کښې آباد شوی وو . د هغوی اخلاف نن ورځ په تهذیب و تمدن او ژبه کښې بید و د پښتنو په شان دی . او خپل قبیلوی نوم او خصوصیات ئے ضائع کړی دی . په دے ډول موږ دا وئیلے شو چه دا اصلی یفتلیا نو کوم قبیلے چه په ګندهارا کښې میشته شوے وے . د زمانے په تیریدو سره په هغوی د پښتنو سره په مجلسی تعلقاتو کښې ګنډلی شوی وی . او د دے په نتیجه کښې به ورو ورو دوی په پښتنو کښې داسے خلط ملط شوی وی چه خپل انفرادیت به ئے ورک شوے وی . او دا ظاهره ده چه د پښتنو په علاقه کښې دا نووارد افتالیت د پښتنو نه په شمیر کښې کم او په تهذیب و تمدن کښې لاندے وو . د علم تمدن دا واضح اصول دے چه که فاتح قام په شمیر کښې ډیر وی نو هغه مفتوح قام په خپل ځان کښې مدغم کړی او که چرے مفتوح قام په شمیر کښې ډیر وی نو هغه فاتح قام په خپل ځان کښې جذب کړی . او دغه حال د تهذیب و تمدن هم دے . د دے اصول په رنړا کښې دا ظاهره ده چه په ګندهارا کښې پښتانه د یفتلیانو نه زیات وو . دا هم معلومه ده چه په خپل وخت کښې یفتلیان د څه خاص تهذیب خاوندان هم نه وو په خلاف د پښتنو چه دوی د شاندار تهذیب خاوندان وو . دغه وجه ده چه دغه نووارد افتالیت په پښتنو کښې داسے جذب شول چه نن ورځ موږ د ګندهارا په پښتنو کښې د یوے قبیلے په حقله هم دا نه شو وئیلے چه د دے قبیلے د څنې خاندانونو اسلاف به یفتلیان وی . په دے بنا د دے خبرے هډو نه سوال پیدا کیږی او نه امکان چه د پښتنو په یو قبیله کښې د هغه قبیلے د خان خیلو کورنئ ګوندے د یفتلیانو اولاد وی . زما په خیال کښې د ګندهارا په پښتنو کښې د افتالیت اولس آمیزش ډیر کم او د نیشت برابر دے . په دے علاقه کښې د یفتلیانو د غلبے او تسلط یادګار صرف په غرثیزو علاقو کښې د ګوجرانو په شکل کښې موجود دے . او د اصلی پښتنو سره د دوی څه تعلق نشته . البته د کوه هندوکش د جنوبی علاقو په استوګنو پښتنو کښې بالخصوص په غلجی او ابدالی پښتنو کښې د یفتلیانو د آمیزش زیات امکانات موجود دی . او د دے په حقله به د غلجیانو په ذکر کښې نور بحث اوشی .

د پښتنو او د راجپوتو ترمينځه د ځينې خصوصياتو د اشتراک و مشابهت نه دا نتيجه اخذ کول چه چونکه راجپوت د غير ملکي خلقو ربا لخصوص د يفتليانو او ګوجرانو اولاد ګڼلې شي . او يفتليان او ګوجران په ګندهارا کښې هم ميشته شوي وو. نو په دې وجه به د پښتنو نسل هم د دې حمله آور قام نه دومره متاثر شوې وي چه يو نوي پوچه به ئې ورکړې وي . زما په خيال کښې د مبالغې نه خالي نه معلوميږي . راجپوت د پښتنو په مقابله کښې يقيناً يو نوې قام دې . د دوي ظهور او عروج د اووم صدئ د آخر نه د هغه وخت سره تعلق لري . چه د هرش نه پس په هند کښې د طوائف الملوکي حالت وو . د غه وخت کښې د هغه غير ملکي خلقو اولاد چه د هندوانو مذهب او هندي تهذيب و تمدن ئې اختيار کړې وو . د اقتدار خاوندان شول او د خپل اقتدار په وجه د راجپوت يعنی د راجاګانو په نامه مشهور شول . دا ظاهره ده چه د راجا د ټامن يعنی ټول راجپوت قام يواځې د يفتليانو او د ګوجرانو اخلاف نشي کيدې . بلکه په دوي کښې به د هغه ټولو قامونو ګډون شوې وي . کوم چه په مختلفو دورونو کښې په هند باندې حملې کړې وي . دا خبره هم د فکر وړ ده چه پښتون قام د هغه ټولو قامونو نه اول هم په دې علاقه (ګندهارا) کښې ميشته شوې وو . کوم چه په هند باندې حملې کړې دي . او دا ممکنه ده چه په پښتنو کښې به هم د دوي څه آميزش اوګډون شوې وي . ولې نه دومره چه د دوي جسماني ساخت او کړه وړه ته به ئې يو نوې شکل ورکړې وي . د پښتنو قامي روايات او خصوصيات نن ورځ هم په دې خبره شهادت کوي چه دا اولس په وس سره د نورو قامونو آميزش اوګډون ته په مينه کښې نه وي . دا هم يوه تاريخي واقعه ده چه پښتانه په هر دور کښې د هر حمله آور قام سره د هند په حملو کښې د هغوي د فوځونو يو لوې عنصر وو . نو امکان کيدې شي چه څه رنګ د دې حملو په دوران کښې د هغه وخت د غير ملکي قامونو ځنې خلق په هند کښې استوګن شوي وي . د غه رنګ به پښتانه هم د دې حملو په دوران کښې په هند کښې ميشته شوي وي . او هندي تهذيب د برهمني مذهب به ئې اختيار کړې وي . او په دې دول به د راجپوتو په نسل کښې د پښتنو عنصر هم شامل شوې وي . د دې نه علاوه د پښتنو او راجپوتو کومو مشترکو خصوصياتو ته چه د دې بناغلي فاضل اشاره کړې ده هغه خصوصيات په هغه ټولو حمله آور قامونو کښې موجود وو . کوم چه په هند باندې په ځوا نوي زمانه کښې حملې کړې دي . او دا خصوصيات يواځې د يفتليانو سره منسوب کول څه

جواز نهٔ لری - په دے ډول په پښتنو کښے د لفظ (خان) استعمال او رواج هم د یفتلیانو د زمانې یادګار نهٔ دے بلکه دا د ډیرے وروستۍ زمانې او د چنګیزخان د تهاجماتو نه پس په دے مزکه مروج شوے دے -

د شپږمے صدۍ (م) د نیمے په حدودو کښے د یفتلیانو مرکزی حکومت مخ په زوال وو - دغه وخت یو نوے قام د دوی د یو سیاسی حریف په شکل کښے ځرګند شو - دغه قام په تاریخ کښے د ترکانو په نوم یادیږی -

ترکان د « هونګنو هانو » د قبیلو څخه یو قبیله وه - چه د چین او صحرائے ګوبي ترمینځ په زرینو غرونو کښے استوګنه وه - دا خلق کله د « اسینا » او کله به د « ترک » په نامه یادیدل - د دے لفظ معنیٰ خود (خول) ده - چونکه چینیانو به د (ر) تلفظ نهٔ شو کولے نو دوی ته یه ئے توکی (ترکی) وئیل - دا خلق په مختلفو قبیلو کښے ویش وو - ولے ژبه ئے یوه وه - او په ابتدا کښے د دے ژبے مختلف لهجے د مغولی ژبے سره مشابهه - معلومیدلے - د دے قبیلو ترمینځه د اشتراک او اعتماد بانده هم دا مشترکه ژبه وه هغه وخت به دا ژبه د سنسکرت او آشوری ژبو د لیک دود په شان لیکلے شوه - قیاس دا دے چه د یفتلیانو نه پس دوی د « اواریانو » د فقیرنامے او همسایه په ډول د هغوی سره استوګن شوی وو - او تر ډیرے مودے د آواریانو مطیع وو - د دے خلقو کسب آهن ګری وه - د نفوسو زیاتوالی او د فلزاتو کار او د ریښمو تجارت د دوی برم او اقتدار زیات کړو - او د دوی او د آواریانو ترمینځه یو شدید جنګ اوشو - په دے جنګ کښے اواریانو شدیده ماته اوموندله - او د وطن نه په تیښته لاړل -

ترکانو د اواریانو په سلطنت قبضه اوکړه - او خپله قبضه ئے د طارم د منطقے نه د سیر دریا او رود آمو تر منطقے اوغزوله - د دوی اولنے خاقان (بادشاه) تومن نومیدهٔ - چه د منګولیا نه د آرال تر غرونو پورے د یو وسیع سلطنت خاوند وو - د ترکانو دا سلطنت د تومن خاقان د مرګ نه پس په دوو برخو کښے اووېشلے شو - د سلطنت یو حصه د مشرقی ترکانو د سلطنت په نامه مشهوره شوه - چه د دے بادشاه به د « کاغان » یا خاخان یا خاقان په نامه یادیدلو - او د سلطنت بله برخه د غربي ترکانو د سلطنت په نامه معروفه شوه - د دے سلطنت بادشاه به د « یبغو » په نامه مشهور وو - د دے سلطنت پوله د یفتلیانو د سلطنت سره جنګیدلی وه - « یبغو » د

یفتلیانو د سلطنت نه د سغد یا نے او د باختر د علاقو د شلولو اراده لرله۔ او په دے لړکښے ئے د ایران د ساسانی بادشاه سره د مشترکے حملے معاهده اوکړه۔ دغه وخت کښے د ایران بادشاه خسرو اول نومیده۔ چه د نوشیروان عادل په نامه هم مشهور دے۔ نوموړے د خپل پلار قباد د مرګ نه پس په کال ۵۳۱ء کښے د ایران بادشاه شوے وو۔ نوشیروان د ایران په ساسانی خاندان کښے یو لوئے بادشاه ګڼلے شی۔ په دے ورځو کښے په ایران کښے د مزدک تحریک جاری وو۔ او د دے په وجه د اولس په خیالاتو او افکارو کښے ډیر انقلاب پیدا شوے وو۔ او د دے تحریک د موافقینو او مخالفینو ترمینځه به جنګونه روان وو۔ نوشیروان په ډیرے سختۍ د مزدک د خیالاتو مخالفت اوکړو۔ او مزدک او د هغه پیروکارئے په ډیرے بے رحمۍ اووژل۔ او په ټول ملک کښے ئے دا تحریک قانوناً بند کړو۔ او د دے نه پس ئے د ترکانو سره د یفتلیانو برخلاف اتحاد اوکړو۔ د ترکانو او ساسانی دولت مشترک فوځونو په یفتلیانو حمله اوکړه۔ او د دے په نتیجه کښے د یفتلیانو دولت سقوط اوموند ۵۶۵ یا ۵۶۸
د فتح نه پس د سیر دریا او رود آمو ترمینځه علاقے د ترکانو په قبضه کښے راغلے۔ او د باختر، هرات او پارتیا په علاقو د ساسانیانو قبضه شوه۔ دغه شان یو ځل بیا د ساسانیانو نفوذ ترکند هارا هم محسوس شو۔ اګرچه دا نفوس هسے په نوم او ډیر بے اثره وو۔ ولے د خپل سلطنت په سقوط یفتلیان بیخی ورک نهٔ شول۔ بلکه د ملک په اکثرو حصو کښے بالخصوص د کوه هندوکش په جنوبی علاقو کښے د دوی ځنے سردارانو علاقائی حکومتونه قائم کړل۔ چه کم و زیات د نهمے صدی ډ(م) پورے قائم وو۔

په ساسانی خاندان کښے د نوشیروان نه پس د نوم و شهرت خاوند بادشاه خسرو پرویز وو۔ نوموړے په ۵۹۰ء کښے بادشاه شوے وو۔ سریانی الاصل ښکلی شیرینه چه د "فرهاد کوهکن" نوم ورسره برغد اخستلے شی۔ او په فارسی ادبیاتو کښے ډیر اهمیت لری۔ د دے باچا ملکه وه۔ خسرو پرویز د خپلو واقعاتو له

مخه په ساسانی تاریخ کښے ډیر شهرت لری۔ د دهٔ په وخت کښے د رومیانو او ساسانیانو ترمینځه د جنګونو یو سلسله شروع شوه۔ چه د ۶۰۳ء نه تر ۶۲۸ء پورے جاری وه۔ دهٔ په خپل دور کښے انطاکیه، دمشق، فلسطین او د مصر ملکونه فتح کړل۔ او ان چه د باسفورس ترغاړے اورسید، د دهٔ په عهد کښے په ساسانی سلطنت د قدیم هخامنشی سلطنت ګمان کیده۔ او ځه رنګ چه دارا یوش کبیر او زرکیسز د رومیانو د

پاره نا قابل تسخیر وو- دغه شان د بازنطینی حکومت د پاره خسرو پرویز نا قابل تسخیر معلومیدهٔ. لیکن د دهٔ د عظمت دا دنیا د صبح کاذب یو ځلق وو- د خسرو پرویز نه یو لویه سیاسی غلطی اوشوه- هغه په یروشلم باندے د حملے او د عیسائیانو د وژلو نه پس د عیسائیانو مقدس صلیب هم د ځان سره راوړهٔ- په دے وسیله هرقل بازنطینی بادشاه د عیسائیٔ دنیا د مذهبی جذباتو نه فائده واخسته- ټول اولس د هرقل په مرسته اودریدهٔ- او د خسرو پرویز نه ئے ډیر زر د ایشیائے کوچک او ارمینیا نو علاقے ازادے کړے. تر دے چه د عیسائیانو حملے د ساسانی بادشاهانو سرمائی دارالخلافے مدائن پورے هم راورسیدلے- هرقل په بل لوری ترکان هم اوپاړول هغوی هم په ساسانی حکومت حملے شروع کړے- د دے دوړخه حملو او پرله پسے شکستونو په نتیجه کښے خسرو پرویز د خپل ځوی دلاسه چه دیو بازنطینی شهزادګئ نه پیدا وو- او وژلے شو- (سنه ۶۲۸ ع) -

د بازنطینی فوځونو دے پیش قدمئ د ساسانی حکومت بنیادونه اولړزول- فوځ د قابو نه بهر شو- دغه وخت کښے ټول سلطنت په یو بحرانی کیفیت کښے مبتلا وو- په څو کاله کښے پرله پسے څو شهزادګان تخت نشین شول- او او وژلے شول- او څه موده پس چه د مسلمانانو لخوا په ایران حملے شروع شوے نو د مدافعت د پاره یو داسے منظم او مضبوط فوځ نهٔ وو چه د مسلمانانو په مقابله کښے ټینګ شوے وے- په دغه حالاتو کښے په کال سنه ۶۳۲ع کښے " یزدګرد دریم " تخت نشین شو- نوموړے د خسرو پرویز نمسے او د ساسانی سلسلے پنځه دیرشم او اخری بادشاه وو- د دهٔ په وخت کښے په ایران باندے د مسلمانانو د حملو آغاز اوشو- او د هغے په نتیجه کښے ساسانی سلطنت هم سقوط اوموندلو-

# عرب فتوحات په خراسان کښې

دامیرالمومنین حضرت عمرؓ فاروق خلیفه دوم په زمانه کښې د کال ۱۵ھ په آغاز کښې د «قادسیې» په مقام د عربو (مسلمانانو) او ایرانیانو فیصله کن جنګ او شو. په دې جنګ کښې د ایران مشهور سپه سالار «رستم» سره د خپلو ډیرو فوځونو اووژلے شو. او «درفش کاویانی» (د ایران قامی نشان) چه د ایرانی سلطنت د قدامت او عظمت یادګار وو. سره د نورو ډیروبے شماره ذخائرو د عربو په لاس راغې. د دې فتح نه پس عربي فوځ د ایران په دارالخلافه حمله اوکړه. دغه وخت کښې ساساني بادشاه خپل صدر مقام پرېښو دلے وو. د پایه تخت د سقوط په خبر اوریدو «یزدګرد» د «حلوان» نه «رې» ته اوتښتیدهٔ. او د یو آخري معرکې په اراده ئې یو عظیم فوځ جمع کړو. او د سپه سالار فیروزان په ماتحتۍ کښې ئې د عربو مسلمانانو مقابلې ته اولیږلو. دا د ایران آخری قسمت آزمائي وه. او له دې کبله ساساني شهنشاه د نورو ایشیائي قامونو نه هم د کومک خواست کړے وو. د نتیجې په لحاظ دا عظیم جنګ په کال ۲۰-۱۹ھ / ۶۴۲ء کښې د «نهاوند» په مقام درې ورځې جاری وو. او اګرچه په دې جنګ کښې د عربي فوځ سپه سالار نعمان بن مقرن خوشهید شو. ولې د عربو د لاسه ساساني فوځونو فاشه ماتې اوموندله. ایرانی سپه سالار او ورسره لس زره ایرانی سپاهیان په جنګ کښې اووژلے شول. او د ساساني شهنشاهۍ د عظمت مناره د «نهاوند» په میدان کښې پرڅکه شوه. د دې نه پس عربو د ایران لوئې لوئې ښارونه فتح کړل. یزدګرد په خراسان کښې د عربو د مقابلې د پاره یو څو کاله ناکام کوششونه اوکړل. ولې د هغهٔ ټول امیدونه شنړ او ختل او آخر د «رې» په مقام د یو علاقائي حکمران «ماهویه سوری» په اشاره اووژلے شو. او د دهٔ په مرګ د ساساني خاندان د سلطنت دوره ختمه شوه.

په کال ۲۳ھ کښې دامیرالمومنین حضرت عمرؓ فاروق د شهادت حادثه پیښه شوه. او د هغهٔ په ځائې امیرالمومنین حضرت عثمانؓ (دریم خلیفه) د مسلمانانو امیر

مقرر شو. د دهٔ د خلافت په ابتدائي کالونو کښې د خراسان معاملاتو ته توجه اونکړے شوه. دغه وجه وه چه د خراسان علاقائي حکمرانان د ساسانيانو د نفوذ په ورکولو او د عربو د آئنده حملو د مدافعت په تابيا کښې لګيا شو. او د دے د پاره دوی ته کافي موقع په لاس ورغله. ولے دوی نهٔ خو په خپل ملک کښے د يو عظيم خراساني سلطنت په تشکيل کښې کامياب شول. او نهٔ د دے محلي حکمرانانو ترمينځه اتحاد و وفاق قائم شو. دغه وجه وه چه عربو کوم وخت بياسر دوباره په خراسان کښے خپل فوځي مهمات شروع کړل. نو د خراسان دے علاقائي حکمرانانو د دغوی په مقابله کښے زيات کړاؤ او تکليف محسوس کړو.

د اميرالمومنين حضرت عثمانؓ دريم خليفه په زمانه خلافت کښے په کال ۳۱ھ کښے عبدالله ابن عامر چه د عربو يو نوميالے قومانډان وو. د خراسان نائب السلطنت اوټاکلے شو. نومړی خپل فوځي مرکز په نيشاپور کښے مقرر کړو. او د دے مقام نه ئے د خراسان د مختلفو علاقو د تسخير په غرض د مشرق او شمال مشرق په لور په دوؤ لارو فوځي اقدامات شروع کړل. د دوی د اقداماتو يوه لار د نيشاپور نه د هرات، مرو او بلخ په لور وه او بله د سيستان په لار چه هغه وخت ورله عربو سجستان وئيلو) د هلمند او بشت په لور دا مقام (بشت) د هلمند او ارغنداب په مقام اتصال واقع وو. او اوس وران شوے دے.

عبدالله ابن عامر د خراسان د مختلفو علاقو د تسخير د پاره مختلف افسران مقرر کړل. چنانچه مجاشع بن مسعود د کرمان په تسخير، ربيع بن زيا د حارثي د سيستان په نيولو او عبدالله ابن خازم د هرات د پاره مقرر شو. هم په دے دول د احنف بن قيس په ماتحتئ کښے د بلخ په لور هم پيش قدمي شروع شوه. کرمان هم دوباره تسخير شو. د هرات والي هم صلح په جنګ غوره کړه. ولے د سيستان حکمران جنګ ته تيار شو. او د جنګ نه پس ئے هغه اوکړل کوم چه ورله اول کول پکار وو. د بلخ علاقائي حکمران هم د خراج ادا کولو په اقرار صلح اوکړه. او دغه شان د يو کال په مختصره عرصه کښے چه عبدالله بن عامر دومره فتوحات حاصل کړل نو مطمئن شو او په نيشاپور کښے ئے په خپل ځائے قيس بن هيثم ،، د خپل نائب په دول پريښودو. او پخپله حج ته لاړ.

اګرچه د دے فوځي اقداماتو په نتيجه کښے د عربو اقتدار په ظاهره کښے په دے منطقو کښے قائم شوے وو. ليکن دا عارضي وو. او ډير زر خراسانيان د خپلو لوظونو او وعدو نه واوړيدل.

او د عربو برخلاف یو عام شورش پورته شو. د ټولو نه اول په هرات کښې د عربو برخلاف تحریک شروع شو. او د قارن نومې یو "ملي مشر" په سرکردګۍ کښې د هرات او "بادغیس" د علاقو نه یو لښکر جمع کړے شو. دے لښکر په نیشاپور حمله اوکړه. او د عربو فوځ کیمپ ته ئې لوئې زیان اورسولو. ولې د عربو نومیالی کماندار "عبدالله ابن خازم" د دوی مقابلې ته فوځ تیار کړو. او په نیمه شپه کښې ئې د قارن په کیمپ حمله اوکړه. قارن په جنګ کښې مړ شو او فوځونو ئې تیښته اوکړه. دغه شان بغاوتونه د سیستان او بلخ په علاقو کښې هم اوشول. او د عربو اقتدار په دے علاقو کښې کمزورے شو. او د دے په نتیجه کښې د عربو فوځي اقدامات د خراسان په مختلفو اطرافو کښې بیا جاری شول.

د کال ۳۵هـ په آخر کښې د امیرالمومنین حضرت عثمانؓ د شهادت واقعه اوشوه. او د هغهؓ په ځائې امیرالمومنین حضرت علیؓ د مسلمانانو خلیفه مقرر شو. ولې د بنوامیه له خوا د امیر معاویه په سرکردګۍ کښې د دهٔ مخالفت شروع شو. او د دے مخالفت په وجه په مسلمانانو کښې جنګونه شروع شول. او د دے په نتیجه کښې په اسلامی فتوحاتو کښې هم بندیز راغلو. د مفتوحه خراسان علاقې هم د دے نه متاثره شوے. د خلیفه له خوا د مفرور شوو اهلکارو او حاکمانو اثر و نفوذ د خلقو نه پاڅیدلو. او دا حالت تر هغه وخت قائم وو چه په ۴۰هـ کښې د حضرت علیؓ د شهادت نه پس امیر معاویه د دمشق په ښار کښې د مسلمانانو واحد بالاستقلال خلیفه شو.

د امیر معاویه د خلافت په دوران کښې د شمالی خراسان په حکومت څو ګورنران بدل رابدل شول. ولې د عربو پیش قدمۍ د رود آمو په منطقه کښې محدوده وه. او د دوی د فتوحاتو لمن د هرات مشرقی او د بلخ جنوبي علاقو پورے نهٔ وه اوږده شوی. بیا هم د امیر معاویه د خلافت په دوران کښې د عربو او خراسانیانو ترمینځه څه قدرے بیګانګی لرے شوه په ۵۱هـ کښې د شمالی خراسان په مهم ربیع ابن زیاد اوټاکلے شو. د دهٔ سره د عربو پنځوس زره لښکر وو. د دے لښکر په مدد ربیع د بادغیس او هرات په ایل کولو کامیاب شو. او تر بلخه لاړے د بلخ محلی حکمران د دهٔ سره د خراج په ادا کولو صلح اوکړه. او د احنف بن قیس هغه زره معاهده ئې بیا تازه کړه. د دے نه پس ابن زیاد د "ماوراالنهر" په جنګونو کښې بوخت شو. او په کال (۵۳هـ) کښې وفات شو. ولې د دهٔ سره چه کوم عرب فوځ تلے وو. هغه د خراسان په اهمو مقاماتو کښې استوګن شو. د دے نه علاوه ډیر عرب مهاجرین چه د خراسان په مختلفو مقاماتو کښې استوګن شوی وو. د باهمی او یو ځائې استوګنې له کبله د عربو او خراسانیانو ترمینځه د مخالفت او دشمنۍ ګرد و غبار ترڅه حده لرے شو او د باهمی مجلس روابطو د قیام

په وجه ورو ورو خراسانیان هم د اسلام د حقیقت نه آګاه شول. او د څه جبر او اکراه نه بغیر خلق د اسلام قبلولو ته مائل شول. عرب حاکمانو هم د اولسي خلقو سره د رواداری او انسانیت سلوک شروع کړو. چنانچه د عربو په مفتوحه علاقو کښې د غالب او مغلوب او حاکم او محکوم تصور د مینځ نه اووتلو. او اموی حاکمان د مفتوحینو نه لږ مطمئن شول. او دا ئے غوره اوګڼله چه د زمانې په تیریدو سره به د خلقو په زړونو کښې د اسلام او مسلمانانو سره مینه پیدا شي او اسلام به په دوی کښې خور شي. دغه وجه ده چه "ابن اثیر" په دے ویلو مجبور شوے دے. چه مسلمانان په خراسان کښې د خپلو فتوحاتو سره اوږه په اوږه د اسلام په خورولو کښې نهٔ دی کامیاب شوی.

حضرت امیر معاویه په سنه ۶۰ھ کښې وفات شو. او د هغهٔ په ځائے د هغهٔ ځوئے یزید حکمران شو. د دهٔ په زمانه کښې د شمالی خراسان په ګورنرئ مسلم ابن زیاد مقرر شو. لیکن د سیدنا حضرت امام حسین رضی الله عنهٔ د شهادت د غمزنے پیښې په وجه په خراسان کښې د عربو قبائیلو ترمینځه خونړی جنګونه شروع شول. او د دے جنګونو په نتیجه کښې خراسانیانو ته بیا د سرکشئ موقع په لاس ورغله. د عربو ترمینځه دا جنګونه د اموی ګورنر "مسلم ابن زیاد" او عبدالله ابن خادم ترمینځه (چه د حضرت عبدالله ابن زبیرؓ سرپرستال وو.) شروع وو. د جنګونو دا سلسله د خلیفه عبدالمالک (اموی) په زمانه کښې هم جاری وه. د دے جنګونو په دوران کښې عبدالله ابن خازم په کال (سنه ۷۲ھ) کښې د "مرو" په مقام اووژلے شو. او د دهٔ ځائے بکیر بن وشاح اونیولو. دهٔ هم د اموی خلیفه د بیعت نه انکار اوکړو. د دمشق خلیفه د شمالی خراسان په ګورنرئ امیه بن عبدالله مقرر کړو. د دے نه پس هم د بکیر بن وشاح او امیه بن عبدالله ترمینځه جنګونه جاری وو. په کال (سنه ۷۷ھ) کښې بکیر هم په یو جنګ کښې اووژلے شو. او امیه کامیاب شو. امیه په دے کامیابئ ډاډه من شو. او د مرو نه ئے د بلخ په لور پیش قدمی اوکړه. لیکن د بلخ خلقو د دے سره د خپلو فوځونو محصور کړو. آخر په ډیر کړاؤ زحمت ئے خپل ځان خلاص کړو. او "مرو" ته راغے.

خلیفه عبدالمالک د خراسان په دے غیر یقیني حالاتو ډیر متفکر وو. او د حکومت د اقتدار او امن امان د قیام په غرض ئے د یو سخت ګیر او مضبوط بنیادم ضرورت محسوس کړلو. چنانچه په سنه ۷۸ھ کښې ئے امیه د خراسان د حکومت نه معزول او د هغهٔ په ځائے ئے د عربو مشهور فعال او سفاک بنیادم حجاج بن یوسف ثقفی د ټول مفتوحه خراسان والی مقرر کړو. حجاج د شمالی خراسان په حکومت مهلب او د سیستان په ګورنرئ عبدالله بن ابی بکر اوټاکل. مهلب

يو پرهيزګار او نيک نفس سړے وو. او د ٨٣هـ پورے په خپله عهده قائم وو. او بيا د هغهٔ په ځائے يزيد او په دهٔ پسے مفضل په کال ٨٥هـ کښے ګورنر شو. ولے په دوی کښے يو هم د خپلو وړاندينو ګورنرانو نه يو قدم وړاندے کښے نښود لے شو. په دے وجه عبدالملک د عربو مشهور سردار او نوميالے جرنيل ”قتيبه“ په کال ٨٦هـ کښے د شمالی خراسان په ګورنرئ او ټاکلو.

قتيبه د راتلو سره پيش قدمی شروع کړه. او د بلخ پورے علاقه ئے څه په جنګ او څه په صلح او نيوله. او بيائے د کابل ”شاه“ په حکومت د حملے اراده اوکړه. ولے د ”کابل شاه“ د لورى نه د قتيبه په خدمت کښے يو وفد حاضر شو. او د خراج په اداکولو او په خپل دربار کښے د يو مسلمان نمائنده په ساتلو ئے آمادګی ظاهره کړه. او صلح ئے اوکړه. ”خوارزم شاه“ هم د کابل شاه پاليسی غوره کړه. او د خراج اداکولو او په خپل دربار کښے د يو مسلمان نمائنده ساتلو اقرارئے اوکړو. د دے نه پس ”قتيبه“ سمرقند هم فتح کړو. په دے دستور قتيبه په ډيرے مثاله جرأت په شمالی خراسان کښے د اموی خلافت برم او اقتدار قائم کړو. او د اولے صدئ هجری تر آخره هم هغه په دے علاقو حکمران وو.

په کال ٩٦هـ/٧١٤ع کښے خليفه وليد بن عبدالملک وفات او د هغهٔ په ځائے سليمان خليفه شو. سليمان د حجاج او قتيبه دواړو سخت مخالف وو. ځکه چه دوئ د هغهٔ د جانشينئ مخالفت کړے وو. د غه وخت حجاج وفات شوے وو. ولے قتيبه د خليفه برخلاف د خپل بيعت اعلان اوکړو. په دے خبره په عرب قبائيلو کښے اختلاف پيدا شو. په دے اختلاف پيدا کولو کښے د خراسانيانو هم پوره لاس وو. د ”وکيع“ په سرکردګئ کښے چه د بنی تميم قبائيل مشر او د قتيبه سخت دشمن وو. بنی تميم او بنی مضر ديو بل مقابلے ته او دريدل په دے خانه جنګئ کښے قتيبه په کال ٩٧هـ/٧١٥ع کښے اووژلے شو. او د غه شان مسلمانان د يو ډير بے مثله بهادر افسر نه محرومه او خراسانيان د يو سخت ګير حاکم نه خلاص شول.

د قتيبه په ځائے يزيد بن مهلب د خراسان په ګورنرئ او ټاکلے شو. د دهٔ لويه کارنامه دا وه چه د قتيبه لوئے دشمن وکيع ئے سره د هغهٔ د خاندان قيد او د خراسان هغه خلق چه د عربو په دے بے اتفاقئ کښے ئے لويه برخه لرله اووژل. د دے ګورنر ځائے د حضرت عمرؓ بن عبدالعزيز د خلافت په دوران کښے جراح بن عبدالله اونيولو. ولے د غه وخت چه اموی حکومت د خپل عروج انتها ته رسيدلے وو. په خراسان کښے د اموی حکومت حاکمان او اهلکاران د يو مضبوط حکومت په تشکيل کښے نهٔ وو کامياب شوی. تر دے چه په ١٣٢هـ/٧٥٠ع کښے د اموی سلطنت

دوره ختمه شوه.

په دې اوږده عرصه (یعنې د سنه ۳۱ نه تر ۱۳۲ ه) کښې په خراسان کښې د عربو حکومت صرف په دوه علاقو "مرو او نیشا پور" کښې په مستقل ډول قائم وو. ددې نه علاوه په نورو ټولو ښارونو او د شمالي خراسان په علاقو (لکه تخارستان، بلخ، جوزجان، هرات او داسې نورې علاقې) کښې محلي او علاقائي رئیسان حکمران وو. اګرچه دوی به خراج ورکولو. او څنو به خپلو دربارونو کښې مسلمان نمائنده هم لرلو. ددې باوجود به چه دوی ته موقع په لاس ورغله نو د باج وخراج نه به ئې انکار کولو. او بغاوت او سرکشئ ته به تیار وو. په قادره قلاره اموي حاکمان دې خبرې ته آماده شول چه د هغه خراسیانو چه اسلام ئې قبول کړے وو. اعتماد او تعاون حاصل کړي. او د حکومت د کارونو په چلولو کښې د دوی نه کار واخلي. خراساني سردارانو هم په دې کارکښې د عربي حاکمانو سره تعاون شروع کړو. ولې د دې باوجود دوی به هروخت ددې موقع په انتظار کښې وو. چه خپل سلطنت تشکیل کړي. دغه وجه ده چه د زمانې په تیریدو سره دوی آخر خپل مقصد ته اورسیدل. او څه موده پس د بخارا ساماني حکومت او د غزنویانو حکومتونه تشکیل شول لیکن په خپله عرب نه خو د کابل په منطقه کښې د حکومت په تشکیل کښې کامیاب شوي وو او نه ئې د غزني په منطقه کښې.

**د سیستان په لار د عربو پیشقدمي**:- لکه چه مونږ وړاندې وئیلي دي عربو دا لفظ سجستان ضبط کړے دے. په سنه ۳۱ ه / ۶۵۱ء کښې څه رنګ چه د نورو اطرافو په تسخیر لګیا شول. دغه شان د سیستان په تسخیر ربیع ابن زیاد حارثي مقرر شوے وو. د ابن زیاد او سیستانیانو مقابله د "زرنج" په مقام اوشوه. "زرنج" غالبًا چه هغه مقام وو چه د هخامنشیانو د سلطنت په دوره کښې د "زرنکه" په نوم یادیدلو. او وروستو د غزنیانو په دوره کښې د سلطنت په مغربي حدودو کښې یو اهم مقام وو. اوس چه دغه ځائې د هلمند سیند په ډیلټا کښې د "نادعلي" ښار آباد دے. د زرنج دا جنګ د ابن زیاد په فتح ختم شو. ولې څه رنګ چه په کال سنه ۳۲ ه / ۶۵۲ء کښې په هرات او نورو اطرافو کښې د عربو برخلاف شورش پورته شوے وو. دغه رنګ په سیستان کښې هم شورش پورته شو. سیستانیان د خپلو لوظونو او وعدو نه واوړیدل. او د ابن زیاد نمائنده ئې په شړلو مجبور کړو. ابن زیاد دا ځل د سیستان د تسخیر د پاره د عربو مشهور قومندان عبدالرحمان ابن سمره راولیږلو. عبدالرحمن د راتلو سره د سیستان علاقائي حکمران "ایران ین رستم" په صلح مجبور کړو. په سنه ۳۵ ه کښې د حضرت عثمان رض د شهادت په واقعه چه ابن سمره عبدالله ابن زیاد ځنه په تلو مجبور شو. نو د ابن

سمره په تللو سیستانیانو بیا دابن سمره نماینده په شړلو مجبور کړو. او تړولې لوظنامې او معاهدې ئې د پښو لاندې کړې. چنانچه یو ځل بیا ابن سمره د سیستان په تسخیر روان شو. او د زرنج د تسخیر نه پس ئې «بست» هم اونیولو. چه په دغه علاقه کښې یو لوئې ښار وو. او بیا د «دوان» په ښار کښې چه د زمینداور د علاقې یو مرکز وو. د اولسي خلقو او ابن سمره تر مینځه یو سخت جنګ اوشو. د زمینداور علاقه نن ورځ د ابدالي پښتنو یو لوئې مرکز دې. امکان لري چه دا خلق به په هغه زمانه کښې هم دلې میشته وو. ولې دغه ورځو کښې د پښتنو قبائیلو نامې لا په تیرو کښې پټې وې. د جنګ نه پس د دې علاقې خلق په «کوه زور» کښې محصور شول. خو آخر ئې ملې ته غاړه کیښوده. ابن سمره د دې ځائې د مشهور «معبد زور» نه د (رب النوع آفتاب) د طلائي بُت سترګې چه د یا قوتونه جوړې وې را اوښکلې. او بت ئې ماتَ کړو. او د دې ځائې مرزبان ته ئې اووې چه سره زر او جواهرات د انسان نه کم رتبه څیز دې. او دا مې ځکه اوکړل چه تا ته دا معلومه شي چه دا بُت نهٔ تاسو ته څه فائده دررسولې شي او نهٔ څه نقصان.

عبدالرحمان یو فهیم او ماهر سړې وو. مفتوحه ملکونه به ئې سمدستي د انتظام لاندې راوستل. او د عالمانو یوه ډله به ئې په مفتوحه علاقوکښې د اسلامي تبلیغ او تعلیم د نشر کولو په غرض د خپل ځان سره کرزوله. د دې نه پس ابن سمره د «کابل» «زابل» او «الرخج» د تسخیر په اراده روان شو. د کابل نه مراد هم دغه کابل دې چه شاید په دغه وخت کښې د اوسني ښار نه د مشرق په لور د شپږ اتهٔ کلومیټره په فاصله آباد وو. د زابل نه مراد د عرب مورخینو په خیال کښې هغه علاقه ده چه د هزاره جات په ښکتني علاقه مشتمله او د رود «هلمند» «ارغنداب» او ترنک تر مینځه واقعه ده. ولې بابر د «زابل» علاقه د غزني په سویل د «مکور» په لور یادوي. د «الرخج» نه مراد هغه علاقه ده چه په کلاسیکي دوره کښې د «اراکوسیا» په نامه مشهوره او کم وبیش د اوسني قندهار په منطقه مشتمله وه. په دغه زمانه کښې په دې علاقوکښې دوه بادشاهان حکمران وو. چه عربو به ددوی برخلاف د سیستان نه پیش قدمي کوله. په دې بادشاهانو کښې شاید چه د «زابل او الرخج» حکمران د «رتبیل» «زنتیل» «زنبیل» یا «رانتیل» ته موږو ئي نامه مشهور وو او هریو حکمران چه به په تخت ناست وو. هغه به په دې نوم یادیدلو. د کابل د علاقې حکمران به شاید چه د «کابل شاه» په نامه معروف وو. ولې په یقیني ډول د دې دواړو حکمرانانو د حکومت د دائرو تعین نشي کیدې. د کابل شاه د پاره هم د «رتبیل» نامه استعمال

شوی ده - دواړه حکمرانان یقیناً غیرمسلم وو - احتمال لری چه دغه ټوله علاقه په یو ریاست کښې شامله وه - او « رتبیل » به حکمران اعلیٰ او کابل شاه به د هغهٔ نائب السلطنت وو او یا بالعکس دلفظ رتبیل معنیٰ هم معلومه نهٔ ده - امکان کیدے شی چه دا یو هندی لفظ وی - او د « رتن پاله یا راځ پاله » یو وران شکل وی - او د عربو مورخینو په ځلو تحریرونو کښې رتبیل ، زنبیل ، رنتبیل ، وغیره ضبط کړے وی - به هرحال د عرب مؤرخینو نه وروستو فارسی مورخینو هم دا لفظ د دے خطے د بادشاهانو دپاره استعمال کړے دے.

ولے ابن سمره په دے خطه کښې څه خاصه کامیابي حاصله نهٔ کړه سوا د دے نه چه کابلیانو ځ د آئنده حملو د مدافعت دپاره تیار کړل - د ابن سمره او کابل شاه ترمینځه د یو مختصر جنګ نه پس په کال ٣٣ھ کښې صلح او شوه. او سمره سیستان ته بیرته لاړ - د عربو په دے حملو کښې چه په اول ځل د کندهارا د علاقے په حقله څه سراغ موندلے شی - هغه د ابن سمره د یو قوماندان المهلب ابن ابی صغره هغه حمله ده کومه چه هغهٔ په کال ٤٤ھ (٦٦٤ء) کښې په « البنه » او « الاهوار » کړی ده - دا دواړه ځایونه د عرب مؤرخینو د وینا مطابق د کابل او ملتان په شاهراه واقع وو - د دے ځایونو تعین او د موجوده مقاماتو سره د دے مطابقت په یقینی ډول نهٔ دے شوے - په تاریخ افغانستان جلد دریم ص٥٥ کښې دا ځایونه « بنه » او « اهوار » لیک دی - اصل عبارت داسے دے « مهلب سردار دیګرے از عرب در ٤٤ھ « تابنه » و « اهوار » و قیقان عسکرکشیده و بعد ازجنګهائے چندے بدون اخذ نتیجه مراجعت کرد »

د اوسنۍ زمانے د ځنے عالمانو په خیال کښې د عربو د « البنه » نه مراد د بنوں موجوده ښار دے - یعنی د دوی په خیال کښې د عربو دا حمله د بنوں په موجوده ښار شوی وه - لیکن ښاغلے الله بخش صاحب یوسفی په خپل تاریخ یوسف زی افغان کښې د دے سره اختلاف ظاهروی - او داسے وائی چه « اګرچه دلفظ بنه نه د اوسنۍ زمانے عالمانو د صوبه سرحد موجوده ښار بنوں مراد اخستے دے - لیکن د مقامی روایاتو یا د تاریخ نه د دے د مطابقت په مرسته کښې یوه واقعه یا قیصه نه شی - بیان کیدے » او وړاندے داسے وائی چه د مقامی روایاتو نه دا معلومیږی چه د سلطان شهاب الدین غوری په زمانه کښې په دے زمکه د منګل او هنی قام خلق آباد وو - وروستو دغه خلق شتکٔ[1] قام د

---

[1] دا لفظ شتک نه بلکه شیتک دے - او د دے نه مراد د بنوڅو او دوړو اولس دے - (نوری په ځ ٢٤٤)

دے علاقے ته په وتلو مجبور کړل. او « شتک » قام په دے علاقه قبضه اوکړه. د اوبو ډیر والی له کبله دا علاقه د « ډنډ » په نامه مشهوره وه. ولے د « شتک » د بنځے په نامه د دے علاقے نوم هم بنوں کیښودلے شو. د دے په خواو شا کښے چه د کوم ځائے نه د بده مذهب آثار موندلی شوی دی. هغه ځائے ته به ټے اکره وئیل. په روایتونو کښے وئیلے شوی دی چه هندوانو «اکره» « په ست رام » بدله کړه. او دغه ځائے یعنی رست رام) په ۱۰۶۱ء کښے د سلطان محمود غزنوی د لاسه برباد شو. د دے نه دا معلومیږی چه د عربو د راتلو نه ډیر پس ته هم د محمود غزنوی تر زمانے پورے د « بنوں » یا « بنه » په نوم په دے علاقه کښے هیڅ آبادی نه وه. په دے بنا « بنه » د « بنوں » سره تطبیق کول درست نه معلومیږی. وړاندے دا ښاغلے د مردان په ضلع کښے د « سلیم خان او توتالی » په پوله باندے د قبیلے په لور د کوهاټی د نهر د غاړے نه څه دوه میله لرے د « بنه ډهیری » نومے یو علاقے سره د عربو د « البنه » تطبیق کوی. او دا خیال ظاهروی چه د عربو حمله به هم په دے ځائے شوے وی.

د بنوں او « البنه » د تطبیق په لړ کښے د ښاغلی یوسفی صیب قیاس درست نهٔ معلومیږی. زما په خیال کښے د عربو « البُنه » او د بنوں موجوده ښار یو مقام دے. بنوں د ملتان او کابل په عین شاهراه واقع دے. او د پښتنو په علاقه کښے د پیښور نه پس د کوه سلیمان په لړ کښے د ټولو نه زیاته زرخیزه او آباده علاقه هم د « بنوں » ده. او ځکه د ابادئ او بیا د حملے د پاره ښه زیاته موزونه وه. سلطان محمود غزنوی او شهاب الدین غوری په خپل خپل وخت کښے په ملتان باندے اکثرے حملے هم د « بنوں » په لار کړی دی. او دا واقعات د غزنوی او غوری زمانے په تاریخونو کښے موجود دی. د دے نه دا صفا معلومیږی چه په غزنوی دوره کښے دغه علاقه اباده او د بنوں په نامه مشهوره وه. او د بنوں ښار هم موجود وو. دا ظاهره ده چه بنوں د ملتان په لار کښے واقع دے. محمود غزنوی چه کومه حمله په ابوالفتح داود حکمران ملتان باندے کړی وه. هغه ئے په دے غرض د بنوں په لار نهٔ وه کړی چه دا حمله په چپه خُله او راز داری کښے اوشی او د پنجاب راجه انند پال پرے خبر نهٔ شی. چه ابوالفتح ته د سلطان برخلاف څه امداد ور نهٔ کړی. په « تاریخ فرشته » کښے د دے حملے ذکر موجود دے او د بنوں د لارے د پاره د « راه راست »

---

(پاتے حاشیه لمخ ۲۴۱) چونکه څنے مغربی لیکوالو دا لفظ هم په دے غلط ډول لیکلے دے. نو یوسفی صیب ته پکښے هم غلط فهمی شوے ده.

الفاظ ذکر شوی دی ۔ ددے نه د بنوں اهمیت او ملتان سره ددے ځائے تعلق څرګند دے ۔ د ښاغلی یوسفی صیب دا وینا هم درست نهٔ ده چه د اسلامی دورے نه وړاندے د بنوں د موجودګئ او وجه تسمیئ په حقله څه تاریخی شهادتونه او مقامی روایتونه نشته ۔ د تاریخ خورشید جهان مؤلف د اسلامی دورے نه وړاندے د بنوں د موجودګئ او وجه تسمیئ په حقله د بنوں د سپین ږیرو د خولے دا روایت لیکلے دے ۔

" په دے علاقه (بنوں) بانډے د " بنوڅو " د میشته کیدو نه اګاهو دا علاقه د " ډنډ " یعنی تهانے زمکے په نامه مشهوره وه ۔ د ظهور اسلام نه مخکښے په دے علاقه بانډے " ست رام " نومے یو هندو مذهب او هندو نسب راجا حکمران وو ۔ د هغهٔ یو لور وه چه بانو نومیده. راجا دغه خپله لور خپل یو نوکر ته چه " دهنی " نومیدهٔ وادهٔ کړه ۔ په دے خبره دا جینئ ډیره خفه شوه او دا ئے خپله بے عزتی اوګڼله ۔ او ښیرے ئے اوکړے ۔ د دے ښیرو په نتیجه کښے په دے علاقه بانډے د کاڼو باران اوشو او پړلئ پرا اووریدله ۔ او دا ټوله علاقه شاړه شوه ۔ او دا ملک د دے جینئ په نامه اول " بانو " او بیا په " بنوں " مشهور شو ۔ د خوا و شا ډیرئیو نه چه د پخوانئ زمانے کوم مسکوکات راوتلی دی ۔ د هغې نه هم دا معلومیږی چه د دے علاقے خلق هندوان وو ۔ د سلطان محمود غزنوی په زمانه کښے چه دلته کوم خلق آباد وو هغه " بدنی " نومیدهٔ ۔ دا خلق هندو مذهبه وو ۔ سلطان محمود په خپلو حملو دا علاقه د کافرانو نه خالی کړه ۔ چنانچه د اکرے ډیرئ په خوا و شا کښے تر اوسه د هغه زمانے د مسلمانانو قبرونه چه د شهیدانو په قبرونو مشهور دی موجود دی۔[۱]

---

[۱] تاریخ خورشید جهان ص۲۶۹ ۔ د خورشید جهان د دے روایت تصدیق د نورو ځایونو نه هم کیږی ۔ لکه چه اوس په ۱۹۶۳ء کښے په میاشتنئ " اولس " کوټه کښے د " اکره " په حقله د ښاغلی آثاری کل آثار له خوا یو مضمون خور شوے دے ۔ دا مضمون د مفهوم او مطلب له مخوا د دے پورته روایت قطعی مرسته کوی ۔ ولے چونکه د دواړو لیکوالو په زبانی روایاتو مبنی دے ۔ نو په جزئیاتو کښے څه لږ ډیر فرق لری ۔ د ښاغلی آثاری کل آثار په مضمون کښے د " ست رام " په ځائے د راجا نوم " وس دیو " او د راجا د لور نامه د " بانو " په ځائے " باڼ " لیک ده ۔ د غه ښار د دے ښار د بربادئ باعث په دے مضمون کښے د دے راجا د خپلے لور سره د بد فعلئ اقدام ښئیلے شوے دے ۔ ولے په خبره کښے دواړه لیکوال متفق دی چه د " اکره " ښار په زمانه قدیم کښے د سماوی آفاتو په نتیجه کښے برباد شوے دے ۔ دا روایات که درست تسلیم شی او که نه دومره خو ورنه ضرور معلومیږی چه په په قدیمه زمانه کښے په دے علاقه کښے لویه آبادی وه ۔ او دا علاقه د باڼ یا بانو په نامه مشهوره وه ۔ او وروستو په استعمال سره د " بانو " نه " بنوں " جوړ شو ۔

دخورشید جهان د مؤلف د وینا مطابق د بناغلی یوسفي داوینا هم درست نهٔ ده. چه هندوانو "اکره" په "ست‌رام" بدله کړه. اکره تراوسه ... پورے هم په دے خپله نامه (اکره) مشهوره ده. او د دے ډیرۍ نه د پخوانۍ زمانے ډیر مسکوکات او نور نوادر موندلے شوی دی. او اوس هم پکښے د پخوانۍ زمانے څیزونه موندلے کیږی. اوکه چرے د آثار قدیمه د ماهرینو په نګرانۍ کښے په دے ډیرټیو کښے د کنستلو کار اوشی. نو امکان کیدے شی چه د زوړ تاریخ په حقله ډیرے خبرے معلومے شی. ست رام لکه څه رنګ چه د "خورشید جهان" په حواله ذکرشود هندو راجا نامه وه چه د حمغهٔ لور "بانو" نومیده. او دا علاقه د همغ په نوم په بنون مشهوره شوی ده. او دا نه چه ګوندے "ست رام" د "اکرے" متبادل نوم وو. دا حقیقت چه د اسلام نه مخکښے په دے ټوله خطه کښے هندوان اوسیدل. د تاریخی شهادتونو او مسکوکاتو نه ثابت دے. د اسلامی دورے مؤرخینو عمومًا هغه ټول خلق چه د هندوکش په جنوبی علاقو کښے د اسلام نه وړاندے استوګن وو. د هندوانو په عمومی نوم یادکړی دی. د عربو د دے زیر بحث حملے (سنه ۶۶۴ء) نه لږ وړاندے یعنی په (سنه ۶۴۴ء) کښے چه چینی زائر هیون سانګ د هند د سیاحت نه بیرته خپل وطن ته په کومه لاره تلے دے. د هغ نه هم دا معلومیږی چه په د غه زمانه کښے د بنو، وزیرستان، او ډیره اسماعیل خان ټوله خطه د کاپیسا په ریاست کښے شامله وه. او دا ټوله آباده وه.

"ست رام" لکه چه ظاهره ده د یو هندو راجا نوم وو نه د یو مقام. همسے هم پښتانهٔ د پخوانۍ زمانے همه قسمه مسکوکاتو ته په عامی ډول "سیت راسۍ" وائی او د دے نه د دوی مراد د پخوانۍ زمانے د غیرمسلم باچایانو مسکوکات وی. او دا خبره هم وړاندے وئیلی شوی ده چه د کیداریانو د زمانے څنے همسی مسکوکات د بنون د علاقے نه راوتلی دی. او د دے قیاس مرسته کوی. چه دا علاقه به په څلورمه صدۍ میلادی کښے آباده وه. او د دے خطے خلق به شاید چه د بدهٔ مذهب او یا د برهمنی مذهب پیروکار وو.

په سنه ۱۹۰۷ کښے د ټوچي په وادۍ کښے یو کتبه موندلی شوی ده چه په سنسکرت او عربۍ دواړو ژبو کښے لیک ده. د دے کتبے تاریخ سنه ۲۴۳ھ دے. او نن ورځ د پېښور په میوزیم کښے پرته ده. د ټوچۍ په علاقه کښے د محمود غزنوی د زمانے نه سبهٔ ډیر کافی وړاندے (سنه ۲۴۳ھ) کښے د سنسکرت او عربۍ ژبے مشترکه کتبه موندلے کیدل په دے خبره دلالت کوی. چه په دے زمانه کښے د مسلمانانو اثرورسوخ تر کافی حده په دے علاقه کښے خور شوے وو. او دومره خلق مسلمانان شوی وو چه هغوی عربي لوستلے او لیکلے شوه. سره د دے د عربۍ سره د سنسکرت

ژبې موجودګي په دې دلالت کوي چه د اسلام د خوریدو نه اګاهو د دې خطې د خلقو د لیک ژبه په سنسکرت وه. او د دې علاقو ټول خلق په هندو مذهب وو. او تر دې وخته (۳۵۳ھ) پورې لا هم اکثر خلق غیرمسلم او د سنسکرت ژبې دائره لا فراخه وه.

د اکرې ډیرۍ سره د محمود غزنوي د زمانې د مسلمانانو د قبرونو موجودګي د دې خبرې واضح ثبوت دے چه د یوولسمې صدۍ میلادي تر آغاز پورې لا په دې علاقه کښې د غیرمسلمو خلقو غلبه او اکثریت وو. په دې بنا د اوئیل حقیقت ته نزدو دي. چه د اسلامي دورې نه ښه کافي وړاندې د بنوں ښار هم په دې ځیل موجوده نوم موجود وو. او عربو په په کوم ځائې حمله کړې وه. هغه هم دا د «بنوں» ښار وو. او که چرې هرو مرو د بنوں د موجودګۍ نه انکار اوشي نو د ښاغلي یوسفي صاحب د «بنه د ډیرۍ» (تحصیل صوابۍ) په حقله هم څه داسې تاریخي شهادت او مقامي روایت نشته. چه د هغې نه دا معلومه شي چه کونډے په دے علاقه کښې یو داسې مقام موجود وو. چه عربو په هغې باندې د حملې کولو تلوسه لرله او که هسې دا ښاغلي د ځپل خواهش مطابق د پښتنو د تاریخ هره واقعه د یوسف زو قبیلې او علاقې ته منسوب کول غواړي. نو دا د هغهٔ ذاتي خواهش کیدے شي. تاریخ ورله نهٔ شي وئیلے. پس په اکثرو احتمالاتو د المهلب په حمله کښې چه د «البنه» په نوم کوم مقام ذکرشوے دے هغه هم د غه د بنوں موجوده ښار او یا د دے په خواوشا کښې هم په دغه نامه یو بل مقام وو.

«الاهوار»:- د تاریخ افغانستان مصنف څه رنګ چه د «البنه» تعین نهٔ دے کړے. دغه شان ئې «الاهوار» هم په مله کښې پریښے دے. د مسټر راورټي په خیال کښې «الاهوار» «اهواز» دے چه د بصرې سره نزدو په خوزستان کښې واقع دے. د دهٔ په خیال کښې مهلب تر لاهور نهٔ دے راغلے. ځکه چه دا ښاغلے د عربو «الاهوار» او د مغربي پاکستان «لاهور» یو مقام ګڼي. او داسې معلومیږي چه دے

د لاهور (ضلع مردان) نه خبردار نهٔ دے.

د ښاغلي کیرو په خیال کښې د عربو «الاهوار» او د مردان (لاهور) یو مقام دے. دے وائي چه د عرب مؤرخ بلاذري مطابق «الاهوار» د لاهور په ځائې ذکر دے. او دا «الاهوار» هم هغه ځائې کیدے شي. چه د یوسف زو په علاقه کښې د «هنډ» د کودر نه څه د غلورو میلو په فاصله واقع دے. د دے کلي نه کیر چاپیره پنځه اوږدهٔ او پردهٔ ختان تاوډي. چه یو کښې د بټوسو فټو نه زیات اوچت دے. د دے ختانو په وجه د مفاظت له مخه دا یو موزون مقام دے. او دا هم هغه ځائې دے چه د عربو حمله پرشوي وه. دا ځائې د «پېښور» په لاره

د ملتان او کابل په شاهراه هم واقع دے. دا هم ډېر امکان لري چه مؤرخ فرشته چه د راجه جے پال د دارالخلافې په ډول کوم لاهور ذکر کړے دے. هغه هم دغه لاهور وی. او نه هغه لاهور چه اوس د مغربي پاکستان دارالخلافه ده. او د راوی سیند په غاړه واقع دے.

د دے ښاغلي په خیال کښې " اوهند یا ویهند " چه د هندو شاهانو دارالخلافه ورته منتقل شوی وه. هغه ځائے هم دغه موجوده هنډ نه بلکه دا لاهور کلے کیدے شي. ځکه چه د دهٔ په خیال کښې "هنډ" بالکل د سیند په غاړه او د یو ورکوټي فصیل دننه واقع دے. او د مدافعت له مخه د دارالخلافې له پاره موزونیت نهٔ لري. د هنډ په خواوشا کښې د پخوانئ زمانې څه ډېرې اوغټې نښانې هم شته چه د هغې نه د زوړ ښار د موجودګئ څه امکان څرګند شي. د دے په مقابله کښې لاهور د حفاظت د موزونیت له مخه یو داسې ځائے دے چه دارالخلافه به هم دے ځائے وه. او دا هم قرین قیاس ده چه د لوی لاهور نامه به هم د دے " ورک نومي لاهور " په نامه اینبودلې شوے وی. او که د دے کلي د خواوشا په غتا نو کښې د آثار قدیمه د ماهرینو په نګرانئ کښې باقاعده " حفریات " اوشي نو امکان لري چه ډېرے نامعلومے خبرے به څرګندے شي. وړاندے دا ښاغلے وائي چه په دے مقام (لاهور) د عربو د وینا مطابق اتلس ترکی سردارانو د مسلمانانو مقابله اوکړه. او دا سرداران به هم هغه یفتلیان وو چه د ضبل مرکزی حکومت د سقوط نه پس ئے په ملک کښې واړهٔ واړهٔ ریاستونه تشکیل کړی وو. او د " زیدے او هنډ " اوسنی خان خیل به د دوئ اخلاف وی.

د " لاهور " (ضلع مردان) او " الاهوار " د تطبیق او تعین په مقاله د ښاغلي کیرو قیاسات معقول او موزون معلومیږی. د مردان ضلع د اورکوټے کلے د پنځمې او څلورمې صدئ ق - م په خوا و شا کښې موجود او د علم مرکز وو. د سنسکرت ژبے مشهور عالم او قواعد دان پاڼیني چه د سنه ۳۵۰ ق - م په خواوشا کښې زیږیدلے وو. هم د دے ځائے استوګن بیانیږی. د اشوکا په وخت کښې چه د بده مذهب د تبلیغ او نشرو اشاعت د پاره کوم مبلغین او بودائي عالمان د مختلفو ملکونو د پاره مقرر شوی وو. په هغو کښې " ما دهنتیکا یا مجهانتیکا " نومے یو بودائي مبلغ د دے ښار ته هم راغلے وو. او په ګندهارا کښې د بده مذهب د تبلیغ اغاز هم د دے مقام نه شوے وو. د دے واقع په یاد کښې یو یادګار هم جوړ شوے وو. چه چیني زائر هیونګ سانګ په خپله سفرنامه کښې د هغې ذکر هم کړے دے. ولے داسې معلومیږی چه د څلورمے صدئ ق - م نه د څلورمے صدئ میلادی پورے دا ځائے یو علمی مقام وو. او څهٔ فوځي یا سیاسي اهمیت ئے نهٔ لرلو. ځکه چه د سکندر مؤرخینو هم د دے ځائے ذکر نهٔ دے کړے. او د

دے وجه شاید چه داوی چه په دغه وخت کښے او د دے نه به ډیر وروستو هم دا مقام صرف د راهبانو او زاهدانو یو مرکز وو. لیکن دا سے ښکاریږی چه د کنشکا په زمانه کښے د دے ځائے مذهبي اهمیت کم شوے دے.

دا ځائے به د بده مذهب د «هنیانا» طریقے مرکز وو. ولے د کنشک په وخت کښے بده مذهب یو نوے رخ اختیار کړے وو. او د «مهایانا طریقے عروج موندلے وو. او «پلینبور» د دے نوی تعلیماتو مرکز وو. دغه وجه ده چه د څلورم صدی میلادی په آخری کال (سنه ۳۹۹ع) چه چینی زائر فاهیان ګندهارا ته راغلے دے نو هغه هم د دے ځائے ذکر نه کوی. او دا په دے خبره دلالت کوی چه په دغه وخت کښے د دے مقام مذهبي شهرت او اهمیت کم شوے بلکه ورک شوے دے. دا هم معلومه ده چه د شپږم صدئ میلادی پورے د ګندهارا د ریاست صدر مقام «پلینبور» وو. لکه چه دا خبره د چینی زائر «سنګ ین» د یادداشتونو نه معلومیږی. نومړے د فاهیان نه چه سل شپږ شله کاله وروستو په سنه ۵۲۰ع کښے ګندهارا ته راغلے وو. او اګرچه د دے د پلینبور نوم خو نه اخلی ولے د کوم ښار واقعات چه بیانوی هغه هم پلینبور کیدے شی. دے دا هم وائی چه په دغه ورځو کښے د ګندهارا حکمران د «کوفن یاکی ین» (چه په اکثرو احتمالاتو د کابل او غزنی په علاقو مشتمل وو) د حکمران سره په جنګونو کښے بوخت وو. او شاید چه د سنګ ین نه څه موده پس د ګندهارا حکومت سقوط موندلے دے. او د «کی ین یا د کاپیسا» د ریاست یوه مقبوضه ګرزیدلی ده. لکه چه دا خبره د چینی زائر هیون سانګ د سفرنامے نه معلومیږی. هیون سانګ په سنه ۶۳۲ع کښے کاپیسا ته راغلے وو. او د هغه وخت د حکمران سره ئے په کاپیسی (بګرام) کښے چه د ریاست صدر صدر مقام وو. ملاقات کړے وو. دے وائی چه د کاپیسا په حکومت کښے د ټیکسلا او ګندهارا ریاستونه هم شامل دی. او د دے نه وړاندے دا ریاستونه خود مختاره وو. د دے نه دا معلومه شوه چه د دے چینی زائر د راتلو په وخت (سنه ۶۳۲ع) کښے ګندهارا د کاپیسا د ریاست یوه صوبه وه. نومړی سیاح د هند نه د مراجعت په وخت (سنه ۶۴۴ع) کښے د کاپیسا د هم هغه بادشاه سره د «اوده بهانده» یا «اوند» په مقام چه په اکثر احتمالاتو د اسلامی مؤرخینو «او هند یا ویهند» دے. دوباره ملاقات کړے دے. او هم د دے باچا په ملګرتیا کښے د هغهٔ سره تر لمغانه پورے تلے دے. احتمال لری چه د باچا سره د «اوند» یا «اوده بهانده» (هند) په مقام د ملاقات په موقع به نومړے سیاح لاهور ته هم تلے وی. او په خپله سفرنامه کښے به ئے د دے ځائے ذکر کړے وی. پس دا ډیره قرین قیاس ده چه د عربو په حمله کښے ذکر شوے «الاهوار» هم دغه د لاهور (ضلع مردان) کلے دے. او نهٔ هغه لاهور چه د مغربي پاکستان صدر مقام دے. ولے د ښاغلی کیرو

دا قیاس چه د هنډ نه مراد هم دغه لاهور دے۔ زما په خیال کښې درست نه معلومیږی۔

لکه چه چینی زائر سُنګ ین (سنه ۵۲۰ء) د وینا نه نه ظاهره ده۔ د شپږمې صدۍ په آغاز کښې دګندهارا ریاست د کاپیسا د ریاست سره په جنګونو کښې بوخت وو۔ او دا جنګونه دکاپیسا په کامیابۍ ختم شوی معلومیږی۔ لکه چه چینی زائر هیونګ سانګ د تحریر نه ثابته ده۔ "پښور" دګندهارا صدر مقام وو۔ لیکن احتمال لری چه دګندهارا د سقوط نه پس به دے ښارته هم لوئ زیان رسیدلے وی۔ او د دارالخلافې په ډول د پاتے کیدو اهمیت به ئے ورک شوی وی. دګندهارا او کاپیسا په بادشاهانو کښې د متعددو دارالخلافو ساتلو رواج وو۔ لکه چه د کنشکا کرمائی دارالخلافه دکاپیسی (بګرام) ښار وو۔ امکان کیدے شی چه دګندهارا د ریاست په ختمیدو به دکاپیسا باچا هنډ د خپل صدر مقام په ډول ټاکلے وی۔ او د شپږمے صدۍ میلادی د نیمے نه پس به دے مقام اهمیت موندلے وی۔ دغه لکه د ننه ورځ د اټک په شان د قدیمے زمانے نه د خپل محل وقوع له مخه پهګندهارا کښې یو اهم مقام وو۔ د سکندر اعظم په وخت کښې او شاید چه د دے نه وړاندے او بیا وروستو هم د هند او ګندهارا ترمینځه د عبور و مرور مقام هم دغه هنډ وو۔ دا مقام چینی زائر د "اوند" یا "اوده بهانده" په نامه یاد کړے دے۔ او اسلامی مؤرخینو د "اوهند یا ویهند" په الفاظو د هندو شاهانو د دارالخلافې په ډول څو ځله ذکر کړے دے۔ د دے نه دا معلومیږی چه دا مقام هم په دے خپله نامه د ډیرے پخوانۍ زمانے نه موجود او یو اهم مقام وو۔ او په مختلفو وختونو کښې به د صدر مقام په ډول هم استعمالیدو۔ دا ظاهره ده چه د "البیرونی" "هند و شاهان" او د "هیون سانګ" "کشاتریه" باچایان یو خلق وو۔ او دجے پال اسلاف هم دغه رتبیلان او کابل شاهان وو چه په هغو کښې دیو باچا سره د عربو د دے حملے نه صرف شل کاله اګاهو (سنه ۶۴۴) هیون سانګ هم په دغه مقام (اوند رهنډ) ملاقات کړے وو۔ او دا ظاهره ده چه دغه وخت دغه مقام (اوند رهنډ) دکاپیسا د باچایانو له خوا د صدر مقام په حیثیت استعمالیدو۔ یا دا سے به او وایو چه دګندهارا د دور په وخت کښې به دکاپیسا د باچا استوګنه په دے مقام وه۔ او په دے لحاظ به دلے شاهی محل او نور سرکاری عمارات وغیره هم موجود وو۔

دا درست ده چه نن ورځ هنډ د یو ورکوټی فصیل دننه اباد دے او د دے په خواوشا کښې د پخوانۍ زمانے څه نخښے نښانے او ډیرۍ وغیره هم نشته۔ ولے په اصل کښې د هنډ کلی دا موجوده اکثره آبادی تقریبًا د هغه ملبے او کانو ښتو نه جوړه شوی ده۔ چه هغه د دے فصیل او د پخوانۍ زمانے دکنډوالو نه حاصله کړی شوی ده۔ دغه وجه ده چه نن زمانه کښې د هنډ په خواوشا کښې د پخوانۍ زمانے کنډوالے نه معلومیږی۔ او دا فصیل هم ورکوټے

معلومیږی - لیکن په ابتدا کښې دا حال نهٔ وو - هنډ د خپل محل وقوع له مخه د حفاظت په لحاظ کښې هم غیرموزون نهٔ دے - دا مقام د سیند په غاړه په یو اوچته ډهیرۍ د فصیل د ننه آباد دے او د سیند د جوار په وجه یو ښکلے منظر لری. او نهٔ صرف د سیلاب د خطرے نه بچ دے. بلکه د اباسیند په وجه د دشمن د خطرے نه هم په هغه زمانه کښې محفوظ وو - په ۱۳۵۷ھ کښې چه په اباسیند کښې کوم خونړے سیلاب راغلے وو او د دے په وجه د پېښور او مردان په ضلعو کښې د سیند د غاړے اکثر کلی تباه شوی وو - د غه خونړے سیلاب هم د هنډ فصیل پورے نهٔ وو اوچت شوے - علاوه د دے نه د هنډ نه کیر چاپیره د فصیل موجودګی په خپله په دے خبره دلالت کوی چه په قدیمه زمانه کښې دا یو اهم مقام وو - او د دے د حفاظت تابیا شوی وه - په دے بنا زما خیال دے چه " لاهور " او " هنډ " څه رنګ چه نن ورځ بیل بیل کلی دی - د غه شان به د هیون سانګ په زمانه کښې او د عربو د حملو په وخت کښې هم بیل بیل او په خپله خپله نامه معروف وو - البته د دے خبرے امکان کیدے شی چه که هنډ د بادشاه د استوګنے مقام وو نو د حکومت نورے ادارے لکه په مثال کښې فوځی چاونړۍ به په لاهور وغیره کښې وے - او د دے وجه د دواړو ځایونو قربت وو -

د ښاغلی کیرو دا قیاس هم زما په خیال کښې درست نهٔ دے چه د لاهور په مقام چه کومو اتلسو ترکی سردارانو د عربو مقابله کړی وه هغه سرداران به د " زیدے او هنډ " د موجوده خانخیلو اسلاف وو -

واقعه په اصل کښې داسے ده چه د عربو په دے زیر بحث حمله کښې درے ځایه ذکر دی - چه " البنه، الاهوار، او القیقان " دی - د البنه او الاهوار تطبیق او تعین خو د موجوده " بنون " او الاهور (ضلع مردان) سره اوشو - د " القیقان " ذکر شاید چه ښاغلی کیرو په دے خیال نوی کړے چه دا مقام په ګندهارا کښې واقع نهٔ دے. او په دے بنا د هغهٔ د تاریخ د دائرے نه بهر دے - " القیقان " کوم مقام دے؟ دا یو جدا سوال دے. البته د اتلسو ترکی سردارانو او عربو کومه مقابله چه د " الاهوار " په مقام مسټر کیرو ذکر کړی ده هغه د عرب مورخ بلاذری د فتوح البلدان مطابق د " الاهوار " په مقام نه بلکه د " القیقان " په مقام شوی ده - او اتلس ترک سرداران نه بلکه اتلس ترک سواران ئے لیکلی دی - هم د دے زیر بحث حملے په ذکر کښې د " القیقان " په مقام د اتلس ترک سوارانو یا ترک سردارانو ذکر په فتوح البلدان (جلد دوم ص۱۸۱) کښې داسے شوے دے:

" په القیقان کښې اتلس ترک سواران مخامخ شول چه د اسونو لکه ئے قیچی شوے وے - په

ډیرے زړورتیا اوجنګیدل - او اووژلے شول - المهلب خپلو ملګرو ته اووئیل کوم څیز داعجبیان زموږ نه زیات چُست اوچالاک کړی دی ؟ بیا هغهٔ (مهلب) هم د خپل اس لکئ قینچي کړه (او) هغه (مهلب) په مسلمانانوکښے وروبے سرے وو - چه د اس لکئ ئے قینچي کړه۔

د بلاذری د دے شهادت په بناچونکه د ترک سوارانو یا سردارانو او عربو مقابله د"القیقان" په مقام شوی ده - نه چه د " الاهوار" په مقام او " القیقان " یقیناًپکښ هارا کښے واقع نهٔ دے - په دے بنا هم دا سوال نهٔ پیدا کیږی چه د"هنی" او " زید" د موجوده خانخیلو اسلاف به دغه سرداران وو اوکهٔ بل څوک ؟

د " القیقان " نه مراد دځینے عالمانو په خیال کښے د بلوچستان موجوده " قلات " دے۔ اسلامی مؤرخینو د دے ځائے حکمران د " قیقان شاه " په لقب هم یادکړے دے۔

د فتوح البلدان (جلد دوم ص۲۰۰) مطابق " قیقان " د سنده د هغه ښارونو یو ښار دے کوم چه دخراسان سره متصل دی - او یا دا چه"قیقان " د سنده په بالائی حصه کښے د سیستان او ملتان ترمینځه واقع دے - به هرحال د " المهلب " نه وړاندے هم دحضرت عثمان رض په دور خلافت کښے د عربوئیو قومانډان " سوارالعبدی " د لاسه دا مقام فتح شوے وو -

د عربو په دے زیربحث حمله کښے درے ځایونه یعنی البنه ، الاهوار اوالقیقان ذکر دی - عربي فوځونه د المهلب په سرکردګئ کښے د قیقان پورے رسیدلی دی - په ۴۴ ه کښے په ملتان باندے د " المهلب " حمله نورو عربي مؤرخینو هم ذکرکړی ده - او د دے حملے په ذکرکښے ئے د قندهار نه تر ملتانه پورے د ټولے علاقے تسخیربیان کړے دے - البنّه او الاهوار خو براه راست دکابل اوملتان په شاهراه واقع دی - د " قیقان " تعین اوشناخت په یقیني ډول نهٔ دے شوے - ولے موږ دا قیاس کولے شو چه دغه مقام به هم چرته په سنده کښے یوځائے وو - پس زما په خیال کښے المهلب به د کابل نه پس په البنّه (بنوں) حمله کړی وی - او په دے مقام د " المهلب " ډیره سخته مقابله شوی ده لکه چه د الازدی د دے شعر نه څرګنده ده۔ ے

---

ل د عربو د دے قندهار نه مراد دافغانستان موجوده د قندهارښار نهٔ دے - بلکه د دے لفظ نه د دغه وخت د دوی مراد د ګندهارا علاقه وه یعنی دوئ " القندهار" دګندهارا د پاره استعمال کړے دے - د دے وضاحت به په خپله موقع اوشی۔ د قندهار موجوده ښار شاید چه په دغه وخت کښے آباد نهٔ وو او یاکم ازکم په دے موجوده نوم خو هاو موجود نهٔ وو۔

أَلَمْ تَرَ أَنَّ الأَزْدَ لَيْلَةَ بَيَّتُوا
بِبَنَّةٍ كَانُوا خَيْرَ جَيْشِ المُهَلَّبِ[۱]

ترجمہ :- " او دے نه لیدل چه په کومه شپه ازدیانو (د عربو یو قبیله) په " البنه" چپاؤ کړے وو ـ هم هغه لښکر (خو) د " المهلب " بهترین توریالیان وو"

او د " البنّه " نه پس به دوی په الاهوار (لاهور ـ ضلع مردان) حمله کړی وی ـ او بیا به ئے د القیقان یا ملتان مخه نیولی وی ـ

په کال ۵۳ھ / ۶۷۲ کښے عبید الله ابن زیاد د مفتوحه خراسان گورنر شو ـ او هغه خپل ورور عباد ابن زیاد د سیستان په گورنرئ او ټاکلو دغه وخت رتبیل بیا ډیر اقتدار حاصل کړے وو ـ او خپل ځان ئے د هندوکش د جنوبي علاقو یعنی د سیستان نه تراباسیند پورے بالاستقلال حکمران گڼلو ـ عباد ابن زیاد په دے خبره مجبور شو چه د رتبیل برخلاف فوځ کشی اوکړی چنانچه ابن زیاد د سیستان نه خپله حمله شروع کړه ـ او د هند ترسرحده را اورسید ه او په بیاتونو کښے د سختو مزلونه پس " القندهار " ته راغے ـ د " القندهار " خلقو د عربو ډیره سخته مقابله اوکړه ـ لیکن آخر ته ئے تیښته اوکړه ـ او مسلمانانو د ډیر ځانی نقصان نه پس القندهار فتح کړو ـ د " القندهار " خلقو اوږدے ټوپۍ په سر کړی وے ـ عباد ابن زیاد هم خپلو فوځونو ته دغه شان ټوپۍ جوړے کړے ـ وروستو عربو دغه قسم ټوپۍ د " العبادیه " په نامه مشهورے کړے ـ د " القندهار " خلقو چه په کوم شدت د عربو مقابله کړی وه ـ او عربو ته ئے څومره نقصان رسولے وو ـ هغه د " ابن مفرغ " د دے شعرونو نه ښکاره دے ـ (ترجمه) د هند په زمکه زمونږ څومره ځوانان اووژلے شول ـ چه د هغوی قبرونه هم نصیب نه شول ـ " القندهار " داسے قصبه وه چه هلته د چا مړګ راشی نو بیا ئے هیڅ څه درک نه معلومیږی[۲] ـ

په دے حمله کښے د " القندهار " نه مراد د افغانستان موجوده قندهار ښار نه بلکه ګندهارا علاقه ده ـ د قندهار ښار په دغه زمانه کښے په اکثرو احتمالاتو موجود هم نه وو ـ او که موجود وو نو د قندهار په نامه مرکز موسوم نه وو ـ د " القندهار " او ګندهارا دیو والی په لړکښے د مؤرخ البیرونی واضح شهادت موجود دے ـ دا ښاغلے مؤرخ ویهند (اوسنے هنډ) ده القندهار " د هندو شاهانو د دارالخلافے په ډول ذکر کوی ـ د دے نه دا صفا معلومیږی چه

---

[۱] د فتوح البلدان اردو مترجم هم د " البنّه " نه مراد " بنوں " اخیستے دے ـ [۲] فتوح البلدان جلد دوم ص ۱۸۱

د القندهار هندو شاهان هم دګندهارا هندو شاهان دی. دغه لیکوال په بل ځائے کښې هم « القندهار » دګندهارا دپاره استعمال کړے دے. لکه چه وائی د رود « بیهت » (جهلم) په قبلئیزه غاړه دجهلم پورے اتۀ فرسخه او تر ویهنده چه د اباسین په قبلئیزه غاړه پرت دے. او د « القندهار » دارالخلافه وه شل فرسخه. او تر پوروِ شاروِ (پیښور) پورے څوارلس فرسخه. د دے نه دا څرګنده ده چه د « القندهار » نه مراد دګندهارا علاقه ده. اوګندهارا د وادئ پیښور ځوانے نوم دے. او دا معلومه ده چه ویهند (هنډ) د هندو شاهانو په دوره کښې دګندهارا صدرمقام وو.

دعربو دا آخری حمله ده چه په ګندهارا باندے شوی ده. او په اسلامی تاریخ کښې ئے سراغ موندلے شی. اګرچه دا حملے د اثر او قبضے له مخه قطعًا عارضی او بے نتیجے وے. البته دا واقعه ده چه دغزنویانو د دورے نه ډیر وړاندے یعنی د اووے صدئ د نیمے نه پس عرب دګندهارا مزکے ته رارسیدلی وو. دا هم امکان کیدے شی چه د دے حملو په وجه به دګندهارا پښتانۀ په اول ځل د اسلام او مسلمانانو د نوم سره متعارف شوی وی. او احتمال لری چه ځنے خلق به په دغه زمانه کښې مسلمانان شوی هم وی.

دا خبره وړاندے ذکر شوی ده چه د امیر معاویه د وفات نه پس د خلیفه عبدالملک ترزمانے پورے دمفتوحه خراسان په علاقو کښې عرب په خپل مینځ کښې په کورنو جنګونو کښې ګکیا وو. داموی خلافت برخلاف د حضرت عبدالله ابن زبیرؓ مرستیال جنګیدل. او خارجیان د دوی دواړو مخالف وو. د دے مشت وګریوانئ په نتیجه کښې د خراسان علاقائی حکمرانانو خصوصًا رتبیلانو خپل قوت او اقتدار ډیر زیات کړو. چنانچه په ۶۶ھ / ۶۸۵ء کښې رتبیل دومره طاقت حاصل کړے وو. چه د عربو ګورنر ئے تر زرنج په شا کړو. اګر دغه رتبیل خو په جنګ کښې مړشو. ولے دده په ځائے چه بل کوم رتبیل تخت نشین شو. هغه د وړاندینی نه هم زیات سرکش او دعربو دپاره ډیر اړک وو. او عرب قوماندان امیّه بن عبدالله د هغۀ د لاسه فاشه ماتے اوموندله. او دده په سزا کښې دخلیفه له خوا معزول کړے شو. په کال ۷۸ھ / ۶۹۸ء کښې یوځل بیا عربو د رتبیل د لاسه فاشه ماتے اوموندله. دا ځل دسیستان ګورنر عبدالله ابن ابی بکر وو. ابی بکر په کابل حمله اوکړه. ولے ډیر نقصان ئے بیا موند. او په تیښته راغے. او د بست په مقام وفات شو.

د دے ناموافقو حالاتو د اصلاح په غرض حجاج بن یوسف ثقفی د خلیفه په مشوره د بصرے اوکوفے د ښارونو نه یوخاص فوځ د رتبیل د تسخیر په غرض مرتب کړو.

دا فوځ په شمیر کښې ځلوبښت زره او دیولک شل زره ځوانانو نه منتخب شوے وو. او

د دے فوځ نه ئے نس زر ځوانان د عبدالرحمٰن بن محمد بن اشعث په کمان کښے د سیستان په لور اولیږل۔ دا فوځ سازو سامان د ډیر والی او د ښکلی ښو ځوانانو له کبله د " طاؤسانو " په فوځ مشهور وو۔

عبدالرحمان سره د خپلو فوځونو په کال ۸۲ھ کښے سیستان ته راغے۔ او د ضروری انتظاماتو نه پس د رتبیل په جنګ کابل ته روان شو۔ کابل شاه هم د حالاتو نه خپل ځان خبر دارساتلو۔ سمدستی ئے عبدالرحمان ته د صلح په عرض یوه جرګه اولیږله۔ ولے عبدالرحمان دا جرګه اونهٔ منله۔ او پیش قدمی ئے جاری اوساتله۔ کابل شاه د فوځی مصلحت په بنا خپل ځان شا ته کړو۔ او عربی فوځونه د دهٔ په تعاقب کښے په غرونو او درو ورننوتل۔ اګرچه عبدالرحمان تر ډیره حده د کابل شاه په سلطنت کښے کامیابی حاصله کړه۔ ولے کابل شاه لا پوره اطاعت نهٔ وو منلے۔ او نهٔ کابل فتح شوے وو۔ د ژمی او یخنۍ له کبله عبدالرحمان په کابل باندے خپله حمله ملتوی کړه۔ ولے حجاج دا خبره او نهٔ منله۔ او عبدالرحمان ته ئے په صرقیبت د کابل د تسخیرکولو هدایات وراولیږل۔ په دے خبره د حجاج او عبدالرحمان ترمینځ دومره اختلاف پیدا شو۔ چه عبدالرحمان د حجاج خلاف بغاوت ته تیار شو۔ او د کابل شاه سره ئے په دے شرط صلح اوکړه چه په حجاج باندے د عبدالرحمان د کامیابۍ په صورت کښے به کابل شاه په دائمی طور د خراج نه معاف وی۔ ولے د عبدالرحمان د شکست په صورت کښے به رتبیل عبدالرحمان ته پناه ورکوی۔ د رتبیل د پاره د دے نه کومه خبره غوره کیدے شوه۔ سمدستی ئے اومنله او عبدالرحمٰن د حجاج مقابلے ته روان شو۔ او د بصرے سره ئے په یو سخت جنګ کښے د حجاج نه ماتے اوکړه۔ او د کابل شاه دربار ته د یو سیاسی پناه ګزین په حیثیت راغلو۔

حجاج چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغهٔ د رتبیل " دربار ته د عبدالرحمان د حواله کولو په غرض خپل یو سفیر " عماره بن تمیم " را اولیږلو۔ دا سفیر یو هوښیار او خوږ ژبانه سړے وو۔ او رتبیل ئے دے خبرے ته آماده کړو چه عبدالرحمان حجاج ته حواله کړی۔ د ابن اثیر د وینا مطابق عبدالرحمان په دغه ورځو کښے د سِل په مرض ناجوړه وو۔ او هم په دے ورځو کښے وفات شو۔ او رتبیل هغه نه په مړونی سر پریکړ و۔ او حجاج ته ئے اولیږلو۔

د دے په بدل کښے عماره بن تمیم د سیستان حکومت حاصل کړو او رتبیل د خپلے شرمناکے بے لوظۍ او بدنامۍ په بدل کښے د عربو د حملو نه د څه وخت د پاره په امان شو[1]۔ دا لوبه په

---

[1] ابن اثیر جلد ۴ ص ۲۷۱ په حواله د تاریخ افغانستان جلد دریم ص ۵۳

سنہ ۸۵ھ / ۷۰۴ء کښې شوی وه۔ د فتوح البلدان مطابق عبد الرحمان ځان د غزنه رغږولے وو۔ او دده سره هغه سرے هم هلاک شوے وو کوم چه د دهٔ په نګرانئ مقرر وو۔ په کوم زغیر چه عبد الرحمان تړلے وو هغه زنځیر د هغهٔ محافظ په ملا پورے هم تړلے وو۔ په دے وجه د عبد الرحمان سره د هغهٔ محافظ هم د غزنه اورغړیدو۔ او هلاک شو۔ د دے په بدل کښې د حجاج او رتبیل معاهده اوشوه چه د هغے له مخه اووه کاله او یا نهه کاله پورے رتبیل د عربو دحملو نه په امان وو۔ او د دے نه پس به رتبیل نهه لکه درهمه د اجناس په شکل کښې دربارخلافت ته د خراج په ډول ورکولو پابند وو۔[۱]

د خلیفه عبد الملک د وفات (سنہ ۸۶ھ / ۷۰۵ء) نه پس په اموی خلافت کښې ضعف و زوال شروع شو۔ په دے دوران کښې عرب ګورنرانو د سیستان په علاقه کښې صرف په زریخ خپله قبضه قائمه وساتله۔ او دا حالت د عباسی خاندان د آغاز پورے وو۔

د عباسی خاندان په دوره کښې هم په دے حالاتو کښې څه فرق پیدا نهٔ شو۔ تر دے د «الما مون» په زمانه کښې کابل شاه هم په زور د دستور بالاستقلال حکمران وو۔ او د مسلمانانو حکومت دے خطے ته نهٔ وو رارسیدلے ایکن کوم وخت چه د خراسان خپل خلق مسلمانان شول او په دے ملکی خالقو کښې ځنے د طاقت او اقتدار خاوندان شول۔ نو حالت بدل شو۔ چنانچه په نهمه صدئ میلادی کښې چه صفاری خاندان اقتدار حاصل کړو نو د یعقوب لیث د لاسه کابل فتح شو۔ او په دے خطه کښې د کابل شاه سلطنت محدود شو۔ کابل شاه د خپل سلطنت صدر مقام د کابل نه و یهند ته منتقل کړ او د مسلمانانو اثر نفوذ د کابل په خطه کښې په مستقل او پائیدار بنیادونو قائم شو۔

د امیه خاندان نه خلافت عباسی خاندان ته منتقل شو۔ د خلافت په دے انتقال کښې د خراسانیانو لویه برخه وه۔ د غه وجه وه چه د دوی په زمانه کښې د خراسانیانو اثر و نفوذ د امیه خاندان د زمانے په نسبت زیات شو۔ او په دوی کښې د عربو نه د آزادئ او خود مختارئ جذبات رااولږزیدل۔ د خلیفه منصور د لاسه د ابو مسلم خراسانی قتل په دے جذباتو کښې نور هم شدت پیدا کړو۔ او د ملک په مختلفو حصو کښې د آزادئ د حصول تحریکونه شروع شول۔ په سیستان کښې د عباسی خاندان د اقتدار په لاره کښې خارجیانو لوئے بندیز واچولو۔ د خارجی کلمه به د هغه خلقو د پاره وئیلے شوه۔ کوم چه په جنګ

---

[۱] فتوح البلدان جلد دوم صفحہ ۱۳۳

صفین کښې اول د خلورم خلیفه حضرت علیؓ مرستیال وو- ولې وروستو د هغه نه په دې خبره ناراض شوې وو چه هغوی د منصفانو فیصله منلی وه- او په دې وجه امیر معاویه په هغهٔ غلبه حاصله کړې وه- د حضرت علیؓ د خلافت په دوران کښې د حکته بن عتاب او عمران بن فضیل نومې دوو مشرانو په ماتحتۍ کښې د عربو ډیر خلق چه نیستۍ او غربت وهلی وو- سیستان ته راغلل- دا خلق په خارجیانو مشهور وو- دا خلق څه رنګ چه د حضرت علیؓ نه مخالف وو- د غه شان د امیرمعاویه نه هم مخالف وو- د خارجي اصطلاح وروستو د سیستان په هغه خلقو هم عائد شوه کوم چه د عربو د حکومت برخلاف شورش او چت کړې وو- دا خلق د خپل مذهبي عقیدو په بنا د سنیانو او شیعه ګانو دواړو مخالف وو- ولې د خپلې پرهیزګارۍ شجاعت او جفاکشۍ له کبله او په تیره تیره په دې وجه چه د عربو او غیرمسلمو شدید مخالف وو- د خلقو همدردۍ د دوی سره وه- دا خلق په اولس کښې ډیر زرمقبول شول او د دوی تحریک یو اولسی او عوامي شکل اختیار کړو- د دویمې صدۍ په آخر کښې یعنې د هارون الرشید په زمانه کښې امیر حمزه سیستاني د دې خارجي انقلابیانو مشر شو- د دې سړي خپل تحریک په خپل ذاتي تدبر او شجاعت د عروج انتها ته اورسولو- عباسی فوځونو ته ئې څو ځله ماتې ورکړه- او د سیستان په خطه کښې ئې د خطبې نه بغیر چه د خلیفه نوم به پکښې اخستلې شو د عباسی خاندان اثر و نفوذ عملاً ختم کړو-

په عباسی خاندان کښې هارون الرشید د لوئې نوم او شهرت خاوند وو- ولې د هغهٔ حاکمان او اهلکاران د سیستان د معاملاتو د سمولو نه لاچاره شو- او هغه د دې خبرې ته مجبور شو چه د سیستان معاملاتو ته په خپله توجه اوکړي- ولې هغه هم د حالاتو د نزاکت نه خبر وو- نو په ابتدا کښې ئې د انقلابیانو مشر امیرحمزه ته یو تهدید آمیز خط اولیکلو- په دې خط کښې خلیفه حمزه سیستاني د هغهٔ د مسلم آزارې رویې د پاره ډیر ملامت کړې هم وو- او دیکې ئې پرې هم کړې وې- ولې په حمزه د دې د یکو څه اثر او نهٔ شو- هغه هم په جواب کښې خلیفه ته تیز او تند خط اولیکلو- او چه په خطونو کار اونهٔ شو نو خلیفه د حمزه برخلاف د یو لوئې فوځ سره د هغهٔ مقابلې ته راروان شو- حمزه سیستاني هم د مقابلې په غرض ډیرش زره جانباز دځان سره واخستل او د خلیفه جنګ ته روان شو- چه نیشاپور ته اورسیدو نو د غه وخت ئې د خلیفه د مرګ واوریدل-

په دې غمژنه موقع حمزه دا مناسب اونهٔ ګڼل چه د خلیفه د فوځونو سره مقابله اوکړي- چنانچه هغه بیرته سیستان ته راغے- ولې چونکه هغه په خپل خیال کښې د غزا په

نیت روان شوے وو۔ نو پنځه زره فوځ ئے په سیستان کښے پریښودو۔ او د نور فوځ سره د بلوچستان او سیند په لور د غزا په نیت روان شو۔

په دے سفرونو کښے هغه شپږ کاله تیر کړل۔ او بیا سیستان ته راغے۔ دغه وخت د مامون الرشید دوره وه۔ د مامون سیستانی ګورنر د حمزه سره روغه اوکړه۔ او حمزه هغه په خپل ځائے پریښود۔ حمزه سیستانی باقی نور عمر په آرام تیر کړو۔ او په کال ۲۱۳ھ کښے وفات شو۔ حمزه سیستانی د خپلو غیر معمولی کارنامو له کبله په خلقو کښے د یو افسانوی پهلوان حیثیت اختیار کړے وو۔

"ګردیز" چه په وادئ زرمت کښے دکرے او خوست نه د یو څو میله په فاصله د ډیورنډ لائن سره نزدو د افغانستان په علاقه کښے یو ښار دے۔ د حمزه سیستانی اباد کرده دے۔ د دے خبرے تصدیق د "حدود العالم من المشرق الی المغرب" نوے کتاب نه هم کیږی۔ په دے کتاب کښے وائی چه ګردیز د خارجیانو یو لوئے مرکز دے۔ د دے نه دا هم معلومیږی چه حمزه خپل اثرو نفوذ د سیستان نه د مشرق په لور تر ډیر لرے علاقے رارسولے وو۔

د دریمے صدئ په آغاز کښے یعنی د سنه ۸۵۰ء په حواو شا کښے د عباسیانو اقتدار هسے هم په نوم وو۔ "رتبیل" په دغه زمانه کښے هم د بُست د مشرقی علاقے پورے حکمران وو۔ اګر چه رتبیل او کابل شاه به کاله کاله خراج ورکولو لیکن هم هغه شان په خپل زور دین قائم او د خپل حکومت په دائره کښے خود مختاره وو۔ په دے زمانه کښے چه ترکومه د کوه سلیمان په سلسله کښے د عربو د حملو تعلق دے هغه د یوے کتبے نه معلومیږی چه په سنه ۹۰۱ء کښے په وادئ توچي کښے موندلی شوی ده۔ د دے کتبے تاریخ سنه ۲۴۳ھ دے۔ دا کتبه په عربي او سنسکرت ژبو کښے لیک ده۔ او نن ورځ د پیښور په عجائب خانه کښے پرته ده۔ په دے کتبه کښے د یو عمارت د تعمیر ذکر دے۔ اګرچه د عمارت د تعمیرکوونکی نامه نۀ شي لوستلے ولے څوک غیر عرب معلومیږی۔ دا کتبه په دے لحاظ سره تاریخی اهمیت لری چه د دے نه دا قیاس مرسته موی چه په سیستان کښے د عباسی خاندان د حکومت په آخری کالونو کښے د سیستان نه واخلے د وادئ توچي پورے د عربئ ژبے نفوذ هم رارسیدلے وو۔ او په دے علاقه کښے د ومره خلق د کافی مودے نه مسلمانان شوی وو۔ چه هغوی عربي لوستلے او لیکلے شوه۔ د دے کتبے نه دا هم څرګندیږی چه د اسلام نه وړاندے په دے علاقو کښے د لیکلو ژبه سنسکرت وه۔ او شاید چه دا حالت د صفاری خاندان د ظهوره پورے جاری وو۔

# دصفّارکورنۍ

د دریمې صدۍ هجری په اوله نیمه کښې په سیستان کښې یو سلطنت تشکیل شو چه ډیر زر ئے دومره اقتدار بیاموند چه د عباسی سلطنت سره ئے سیالی شروع کړه. د دے سلطنت بنسټ یعقوب ایښے وو. یعقوب د سیستان په یوکلی کښې پیدا شوے وو. د پلار نامه ئے لیث وه چه د ټیټارتوب کسب به ئے کولو. په دے د صفّار (ټیټاری) په نامه هم مشهور وو یعقوب د خپل پلار کسب سره مینه نۀ لرله. او دځان سره ئے د داوُ ځابه ځوانانو یو ټولے جمع کړو. او د صالح بن نصر په فوځ کښې شامل شو. دا سړے دخارجیانو لوئے مخالف وو ځکه دخلیفه دلوری نه د سیستان امیرؓ شوے وو.

بشپړ. کاله پس د صالح وروړ د سیستان امیرشو. او د دۀ په وخت کښې یعقوب ددۀ د فوځونو سپه سالار او تاکلے شو. او دوه کاله پس ئے په ۲۶۱ھ کښې د دے فوځ په مرسته خپل ځان امیرکړو او خلقو ئے بیعت اوکړو.

یعقوب یو فعال سړے وو. ورځ په ورځ ئے خپل اقتدار زیات کړو او دسیستان ټول ولایت ئے خپل ځان ته ایل کړو. اوځه موده پس ئے په هرات حمله اوکړه. او دکرمان او شیراز ښارونه ئے هم فتح کړل. چه ذکر به ئے وروستو اوشی. په دغه دوران کښې دۀ دغزنی ښار هم آباد کړو.

د یعقوب په کارناموکښې زمونږ د غرض خبره دهغۀ دکابل فتح کول دی. یعقوب په ۲۵۶ھ ۸۷۰ء کښې په کابل حمله اوکړه. او دا ښار ئے دکابل شاه نه فتح کړو. او د دے ښار دلوئے معبد بت ئے د «بامیان» د بُتانو سره د عباسی خلیفه په خدمت کښې اولیږلو. په ۲۵۹ھ ۸۷۳ء کښې هغه په هندوکش واوړیدو. او بلخ ئے هم اونیولو. اوبیائے په نیشاپور حمله اوکړه او د «طاهریانو» آخری حکمران «محمدبن طاهر» ئے گرفتارکړو. او د دۀ په گرفتارئ طاهری خاندان سقوط اوموند.

د یعقوب د ورځ په ورځ زیاتیدونکی اقتدار نه عباسی خلیفه مهتدبالله ته خطره

پیدا شوه نو د یعقوب سره ئے مخالفت شروع کړو . او دے ئے باغی اوبالۀ . یعقوب هم د دے وضعیت نه متغیر شو . او د خلیفه د معنوی نفوذ او اقتدار نه ئے انکار اوکړو . د عباسی دربار سره ئے خپل سیاسی تعلقات پرے کړل . او د خلیفه برخلاف ئے جنگی اقدامات شروع کړل . په بغداد باندے د حملے په نیت روان شو . د خلیفه او یعقوب ترمینځه جنگ اوشو . ولے د خلیفه د لوری نه د یعقوب فوځونو ته لسون اوشو . او د یعقوب ځنے فوځیان خلیفه ته واوړیدل . د دے په نتیجه کښے یعقوب ماتے اوموندله . لیکن د دے ماتې د یعقوب ارادے سړے نۀ کړے شوے . هغۀ دوباره فوځونه جمع کړل . د حملے په نیت د بغداد په لور روان شو . ولے په لاره کښے ناجوړه شو . او په کال $\frac{۲۶۵ھ}{۸۷۹ء}$ کښے د جندی شاه پور په مقام مړ شو .

د ,, صفار ,, په کورنۍ کښے یعقوب نیت یو زړور . بلند همت او د سړے سینے خاوند وو . او تر د ے اندازے د مستقلے ارادے مالک وو چه خلقو به ورته سندان وئیل . په بغداد باندے په دوئم ځل د فوځ کشۍ په موقعه چه دے ناجوړه پروت وو . د خلیفه د لوری نه د صلح په نیت ورله یو قاصد راغے . په دے موقع یعقوب هغه سفیر ته د اوبو یوه کوزه، پیاز یو څو غوټے او یوه سره ډوډۍ او یو توره ورښکاره کړه . او ورته ئے اووے خلیفه تۀ زما د خلے دا اووایه چه که روغ شم نو زما او ستا دعوۍ به دا توره پریکړی . او که مغلوب شوم نو دا سره ډوډۍ او پیاز زما عادی خوراک دے . او زما د پاره بس دے

یعقوب وړومبے سړے وو چه د کابل شاهانو حکومت ته ئے لویه دیکه ورکړه . او کابل ئے د دوی نه فتح کړو . او دوی ئے د خپل صدر مقام په بدلولو مجبور کړل . هم دغه سړے وو چه د غزنی ښار ئے آباد کړو . او د دے علاقے انتظام ئے اوکړو . دا اول بادشاه وو چه خلجیان یا غلجیان ئے ایل کړل او په خپل لاس کښے ئے راوستل . او د پښتنو ځوانانو نه ئے یو لوئے داوطلبه فوځ مرتب کړو . په مسلمانانو بادشاهانو کښے یعقوب وړومبے بادشاه وو چه په هغه علاقو کښے ئے چه د ساسانی سلطنت مشرقی . وبه کښلے نشوه . په مؤثره طریقه د اسلام طاقت نافذ کړو . په اکثر احتمالاتو دا وړومبے بادشاه دے چه پښتانۀ قبائیل د دۀ په فوځونو کښے په ډیر شمیر کښے شامل شوی وو . دا هم امکان لری چه د دۀ په وخت کښے به د کابل او غزنی په علاقو کښے اسلام په تیزۍ سره خور شوے وی . د صفار کورنۍ به د اسلام سره د پښتنو په هم آهنګ کولو کښے جوته برخه لری . دا وئیل به هم بے ځایه نۀ وی چه یعقوب لیث چه د کوم کار بنیاد ایښودلے وو . یعنی د اسلام سره د پښتنو متعارف کول . او د کابل شاهانو سلطنت د مینځ نه ایستل هغه محمود

غزنوی په خپل وخت کښې تر ډیره حده سرته اورسولو۔

**عمرلیث صفّاری:**۔ د یعقوب لیث د مرګ نه پس د هغهٔ ورور عمرلیث په کال ۲۶۵ھ / ۸۷۹ء کښې د هغهٔ جانشین شو۔ عمرلیث د عباسی خلیفه سره روغه اوکړه۔ ولے ورځ په ورځ ئے خپل اقتدار او برم زیاتوهٔ۔ د عمرلیث ورځ په ورځ زیاتیدونکے اقتدار خلیفه د خپل سلطنت د پاره لویه خطره اوګڼله۔ په دے بنائ د سامانیانو نوے تشکیل شوے سلطنت د عمرلیث برخلاف اوپارولو۔ په کال ۲۸۶ھ کښې د عمرلیث او سامانیانو ترمینځه جنګ اوشو۔ په دے جنګ کښې سامانیان بریالی شول۔ یو ځل بیا د دوی ترمینځه جنګ اوشو۔ په دے جنګ کښې عمرلیث په خپله شامل وو۔ ولے سامانیان بریالی شول۔ او د بده مرغه عمرلیث د دوی په لاس کښې بندیوان شو۔ عباسی خلیفه "معتضد" چه د صفاریانو سخت مخالف وو عمر لیث ئے د سامانیانو نه او غوښتلو۔ او سامانی بادشاه اسماعیل هغهٔ ته دے اولیږلو۔ خلیفه عمرلیث قید کړو او هم په دے قید کښې په کال ۲۸۹ھ کښې وفات شو۔ د صفاریانو سلطنت د سامانیانو د لاسه اوزړلے شو۔ او د غزنی علاقه د سامانی حکومت یوه حصه اوګرزیدله۔

# کابل شاهان

لکه چه وړاندې وټیلی شوی دی یفتلیان دخپل مرکزی سلطنت په سقوط سره بیخی د مینځ نه ورک شوی نهٔ وو۔ بلکه دملک په مختلفو منطقو کښې ئې علاقائی حکومتونه قائم کړی وو۔ چنانچه دعربو د حملو په وخت کښې ټول ملک په وړو وړو علاقائی ریاستونو کښې تقسیم وو۔ او د طوائف الملوکۍ شکل ئې اختیار کړے وو۔ یو مقتدر او مرکزی حکومت چه په ټول ملک حاوی وی۔ دمینځه وتلی وهٔ۔ په دغه ریاستونو کښې د کابل شاهانو حکومت د نورو په نسبت زیات وسیع او طاقتور وو۔ او قطب په سوېل د هندوکش د سوېل نه د هیر مند ترمنطقې او په مشرق کښې د اباسیند ترغاړے او شاید چه په ځنې هندی علاقو هم مشتمل وو۔ د کابل شاهانو دا سلسله چه د رتبیلانو په نامه هم مشهوره ده۔ د دغې بادشاهانو د سلسلې نه یو ه سلسله وه چه دکیداریانو یا کوچنی کوشانیانو په نامه مشهور وو۔ او په اکثر احتمالاتو یفتلیان هم د دوی سره خلط ملط او ګډ وډ شوی وو۔ دا اوږده سلسله چه دکابل شاهانو، ترکی شاهانو، کشا تریانو، برهمن شاهانو او دویهند د هندو شاهانو په مختلفو نومونو یاده شوی ده۔ د البیرونی مطابق په دوو ځانګو کښې ویش ده۔ اوله ځانګه کابل شاهان یا رتبیلان چه د کشا تریه فرقې سره ئې تعلق لرلو۔ د بده مذهب پیروکار وو۔ دغه سلسله وروستو د "تګین شاهانو" په نامه هم مشهوره شوی ده۔ د تګین طبقې بانی د البیرونی مطابق "برهما تګین" او د دے سلسلې آخری باچا " لګه تورمان" نومیدهٔ۔ د دے بادشاهانو دویمه طبقه په برهمن شاهانو یا هندو شاهانو مشهوره ده۔ د دے سلسلې بانی "کلر" نومیدهٔ چه د "لګه تورمان" وزیر وو۔ او د خپل بادشاه نه ئې اقتدار ترلاسه کړو۔ او په خپله باچا او د برهمنی سلسلې بانی اوګرزیدهٔ۔ به هرحال د دے دواړو طبقو د شپږمے صدۍ مینځ دی نه د یوولسمے صدۍ میلادی د آغاز پورے د هندوکش په جنوب کښې حکومت لرلو۔ په ابتداء کښې د دوی د سلطنت مرکز کاپیسی (بګرام) وو مګر د برهمن شاهانو د سلسلې د آغاز سره احتمالاً د کاپیسی د سقوط نه پس د دوی مرکز سلطنت کابل ته منتقل شو۔ دغه وخت کښې په اکثر احتمالاتو د دے سلسلې شاهان د برهمنی مذهب پیروکار وو۔ او بده مذهب شاته شوے وو۔ په دے اوږده

سلسله کښې دے بادشاهانو د ساسانیانو، ترکیانو، هندیانو او وروستو بیا د عربو سره دخپل وطن او سلطنت دحفاظت په لړکښې خونړی جنګونه کړی وو - ولے هرکله چه دملک خپل خلق مسلمانان او دا اقتدارخاوندان شول نو د دوی په سلطنت کښې هم ضعف و زوال شروع شو چنانچه د صفاریانو په دوره کښې د دوی دحکومت وسعت محدود او د سلطنت مرکزئے د کابل نه ویهند (هنډ) ته منتقل شو - او بیا په صفاریانو پسے چه د غزنیانو دوره شوه نو د دوی سلطنت په اوله کښې دلمغان او پیښور نه او بیا وروستو د ویهند نه او ورپسے د محمود غزنوی دلاسه په پنجاب کښې هم ختم شو - او بیخی د مینځ نه اووتو.

د رتبیلانو یا کابل شاهانو دا سلسله په یوځو وجوهاتو ډیر اهمیت لری - یو خو په دے وجه چه د غیرمسلم بادشاهانو په سلسله کښې دا آخری سلسله ده - چه په وادی ګندهارا ئے کم و زیات څلورسوه کاله حکومت کړے دے - او د عربو دوه سوه کلیزو حملو او جنګونو ته ئے په سره سینه مخ نیولے او کله په صلح او کله ئے په جنګ خپله هستی او آزادی قائمه ساتلی وه. او دا د دے روایت دکمزورئ دپاره یو واضح دلیل دے - چه د پښتو دے خطے ته اسلام دخپل آغاز په ابتدائی کالونو کښې سمدستی راغلے او په خلقو کښې خورشوے دے[1].

د دوی د اهمیت بله وجه دا ده چه سره د دے چه ددے بادشاهانو تفصیلی او یقینی حالات په تیرو کښې پټ دی - بیا هم اکثر قرائن په دے دلالت کوی چه دوی ډیر زړور، د مذهب مرستیال او دخپل رعیت خواخوږی وو - لکه چه دچینی زائرینو، هیون سانګ، او، ووکونګ، دلیکنو نه ظاهره ده - ددے سلسلے دا اهمیت وجه زما په خیال کښې دا هم ده چه ددے بادشاهانو جنګونو په سلسله کښې د پښتنو نوم نښان هم د ډیرے اوږدے زمانے نه پس بیا څرګند شو. لکه

---

[1] ووکونګ اخوی چینی زائر دے چه د هیون سانګ نه (۱۳۰) کاله پس یعنی د (۷۵۱-۷۵۹ء) په مینځ مینځ کښې ترګندهارا رارسیدلے دے - دا زائر په ګندهارا کښې ناجوړه شو - او هم دلته پاتے شو - نوموړے زائر وائی چه بادشاه، ملکه او وزیران ټول د بودائی معابدو تعمیرو مرمت ته توجه کوی - او نوی معابد هم آبادوی - دا خبره یعنے د بودائی

معابدو تعمیر و مرمت سره شغف په هغه زمانه کښے یعنی داتے صدی میلادی په مینځ مینځ کښےچه دافغانستان مغربی حصو ته قریباً د سلوکالونه د اسلام رڼا رارسیدلی وه - دافغانستان په مشرقی حصو او ګندهارا کښےد بودائی معابدو مرمت او د نوی معبدونو تعمیر زیات اهمیت لری - او د دے قیاس مرسته کوی چه په دغه وخت کښے په دے علاقو کښے لا اسلام عمومیت نهٔ وو حاصل کړے - او اکثرخلق د بدهٔ مذهب منونکی وو - د دے چینی زائر په وخت کښے چه کوم بادشاه په ګندهارا کښے حکمران وو - غالباً هغه ترکی النسل وو - چه دتګین شاهی د سلسلے په نامه هم یادیږی -

چه د یعقوب لیث په ذکر کښې موږ دا اووئیل چه د دهٔ اکثر فوځونه د غلجیانو او خواوشا د نورو پښتنو قبائیلو نه مرتب وو. او د یعقوب د زمانې نه پس د دې خطې د نورو اسلامي بادشاهانو فوځي اقتدار هم په پښتنو قائم وو. په دې ډول موږ دا وئیلې شو. چه د اسلام د ظهور نه پس د پښتنو د سیاسي ژوند آغاز هم په نهمه صدۍ کښې اوشو.

د اووم صدۍ میلادي په آغاز کښې د کابل شاهانو سلطنت د کاپیسا په نامه مشهور وو. او د کاپیسي ښار چه نن ورځ د موجوده کابل نه (۶۰) کلومیټره شمال ته د بګرام د کنډوالو سره متعین شوې دې. د دې سلطنت مرکز وو. چیني زائر هیون سانګ چه د ۶۳۰ع نه تر ۶۴۵ع پورې د هند په سیاحت کښې مشغول وو. په ۶۳۲ع کښې د کاپیسي په ښار کښې د باچا سره ملاقات کړې وو. د دې زائر د یادداشتونو نه دا معلومیږي چه په دغه وخت کښې د کنډهارا علاقه هم د کاپیسا په ریاست کښې شامله وه. او د دې نه څه موده وړاندې ټیکسلا هم د دې ریاست مقبوضه وه. ولې د چیني زائر د عبور په وخت کښې د ټیکسلا ریاست د کشمیر باجګذار شوې وو. دا ښاغلي زائر د بادشاه په حقله داسې وائي:-

"بادشاه د کشاتریه طبقې سره تعلق لري. او یو هوښیار، عقلمند د لوئې ارادې خاوند او زړور بنیادم دې. او په لسو صوبو یا مقامي ریاستونو حکمراني کوي. د خپل رعیت سره مینه لري. د بدهٔ مذهب پیرو دې. هر کال د ټبرها اتلس فټه طلائي مجسمه جوړوي او مالونه په کنډو رنډو او محتاجانو تقسیموي.

دا خبره د فکر وړ ده چه چیني زائر چه کوم بادشاه په کشاتریه طبقې کښې یاد کړې دې. وروستو عرب مؤرخینو د نهمې صدۍ پورې د دې سلسلې ټول بادشاهان د رتبیل، رنتیل، رانتیل، یا زنتیل وغیره په الفاظو یاد کړي دي. او په حقیقت کښې دا ټول لفظونه د یو لفظ رتبیل مختلف شکلونه دي. د دې لفظ اصلي ترکیب و مفهوم نهٔ دې معلوم. صرف دومره معلومه ده. چه دا د یو خاص سړي یا بادشاه نوم نهٔ وو. بلکه په اکثر احتمالاتو دا د دغه بادشاهانو یو لقب وو. چه د دغوی مرکز سلطنت اول کاپیسي او وروستو بیا کابل شو. په اکثرو احتمالاتو د اتمې صدۍ میلادي تر آخره پورې د رتبیلانو د سلطنت مرکز کاپیسي (بګرام) وو. لکه چه د چیني زائر "ووکونګ" (۷۵۱-۷۶۹ع) د یادداشتونو نه معلومیږي. لیکن د (۱۷۶هـ / ۷۹۲-۹۳ع) په خواوشا کښې ابراهیم بن جبل د فضل بن یحیٰ ګورنر خراسان په حکم د دره غوربند په لار په کاپیسي حمله اوکړه. او ښار ته ئې لوئې زیان ورا ورسولو. دغه وخت دې ښار خپل مرکزیت بائیلود. او د ریاست صدر مقام کابل ته منتقل شو.

لیکن د کابل شاهانو د ریاست صدر مقام «کابل» دا موجوده کابل نهٔ معلومیږی. بلکه هغه کابل د موجوده ښار نه د اوو اتو کلومیټرو په فاصله باندے د جنوب مشرق په لور د «رود لهوګر» د «کمری او چکری» په خوا وشا کښے آباد وو. او اګرچه د کاپیسی (بګرام) نه کابل ته د دارالخلافے د انتقال درست تاریخ معلوم نهٔ دے. لیکن احتمال لری چه د دارالخلافے د تبدیلئ واقعه به د ابراهیم بن جبل د حملے ۹۲۳-۹۳ء نه پس او په اکثرو احتمالاتو د نهیے صدئ په آغاز کښے شوی وی دا هم امکان لری چه د دارالخلافے تبدیلئ به د بادشاهانو د سلسلے د تبدیلئ سره هم څه ربط او تعلق لری. لکه چه پورته وئیلی شوی دی. د رتبیلانو دیوے سلسلے بادشاهان بودائی مذهب وو. او روستو اقتدار برهمن شاهانو ته په لاس ورغلو. د برهمن شاهانو د تاج پوشئ رسم به د کابل په یو معبد کښے ادا کیدلو. د دے خبرے مرسته د البیرونی او رواج ترګین د مندرجاتو نه هم کیږی. نو کیدے شی چه د عقیدے له مخه هم کابل د دے بادشاهانو په نظر کښے تقدس لرلو. او کوم وخت چه شاهی اقتدار د برهمن شاهانو لاس ته راغلے وی. نو د فوځی او جنګی نقطه نګاه سره به د مذهبی تقدس په وجه هم دوی کابل د دارالخلافے د پاره موزون ګڼلے وی. بهرحال د یعقوب لیث د حملے په وخت (۸۷۰ء) کښے د دے باچایانو صدر مقام کابل وو.

لکه چه مو وړاندے وئیلی دی. د البیرونی مطابق دا کابل شاهان د ترکی شاهی او برهمن شاهی په دوؤ طبقو کښے ویش شوی دی. د ترکی شاهی یا ګین شاهی سلسلے وروستی بادشاه «برها تګین» او آخری «لګه تورمان» نومیدهٔ. احتمال لری چه دے به دکند هارا آخری ترکی بادشاه وی. چه په کاپیسا به ئے هم اقتدار و نفوذ لرلو. او یا به ئے پا یه تخت کاپیسی بګرام وُو. د البیرونی مطابق ددهٔ وزیر کلر نومیدهٔ. چه یو برهمن وو. دے وزیر خزانه او موندله. او د دے په وجه ئے اقتدار او شان و شوکت زیات شو. «لګه تورمان» بدخویه او بدمزاجه وو. او خلق ددهٔ د لاسه تنګ وو. او وزیر ته به ئے شکایتونه کول. وزیر خپل بادشاه ته بدنیته شو. او د دے وضعیت نه ئے فائده واخسته. بادشاه ئے ګرفتار او قید کړو او په خپله تخت نشین شو. او د برهمن شاهئ یا هندو شاهئ سلسلے بنسټ ئے کیښو.

د «کلر» نه پس د البیرونی مطابق د دے سلسلے نور باچایان «سامند»، «کملو یا کلمو» بهیم، جے پال، انند پال او تروجن پال دی. آخری باچا د محمود غزنوی د لاسه په ۱۰۲۱ء کښے

---

له د ترکی شاهانو څینے مسکوکات په خاران (بلوچستان) کښے هم موندلے شوی دی او په دے دلالت کوی چه دا علاقه به هم د دوی په سلطنت کښے شامله وه.

کښې اوو ژلے شو۔ او شپېږ کاله پس ددهٔ ځوئے بهيم پاله په ۱۰۲۶ئ کښې په کشمير کښې قتل شو۔ او دا سلسله ختمه شوه.
ليکن ددے بادشاهانو د مسکوکاتو نه چه ددے سلسلے کوم بادشاهان معلوميږی هغه په دے ترتيب دی :
(۱) سپالاپتی ديوا (۲) سامنته ديوا (۳) بهميه ديوا (۴) ويکا ديوا (۵) کماريا کا ديوا۔

لکه چه مو اوليدل - د البيرونی مطابق ددے سلسلے بانی "کلر" او د مسکوکاتو له مخه "سپالاپتی ديوا" معلوميږی - د "سپالاپتی ديوا" په حقله د البيرونی کښې هغه اشاره نهٔ شی موندلے۔ په لفظ سپالاپتی کښې "سپالا" او د اوستائی ژبے "سپادا" يو لفظ دے - او "پتی" د سنسکرت ژبے لفظ دے په معنیٰ د خاوند . نو د ټول لفظ معنیٰ شوه د "لښکرخاوند" يعنی سپه سالار يا سپهبد - امکان لری چه "کلر" د تخت نشين کيدو نه پس د "سپالاپتی" لقب اختيار کړے وی - او په دے نامه ئے مسکوکات ضرب کړی وی - د دهٔ په مسکوکاتو کښې په ناګری حروفو کښې د "سپالا پتی ديوا" نه پس هم د غه الفاظ په کوشانی رسم الخط کښې هم ليک دی - او ددے نه دا قياس مرسته موږ چه د هندو شاهانو د سلسلے وړومبے بادشاه په څه نه څه شکل کښې د کوشانيانو يفتلی روايا تو سره تړلے وو - د "کلر" يا "سپالاپتی ديوا" د زمانے تعين په يقينی ډول نشی کيدے. او دا هم په يقينی ډول معلومه نهٔ ده چه "سپالا پتی ديوا" د "کلر" لقب وو - او که دا به دوه جدا شخصيتونه وو۔

**سامند يا سامنته ديوا :-** ددے سلسلے دوئم باچا د البيرونی د ليکنو مطابق سامند او د مسکوکاتو له مخه "سامنته ديوا" دے. که چرے د "سامنته ديوا" نه (ديوا) جزو په څه خاندانی لقب يا د احترام لفظ معلوميږی لرے کړے شی۔ نو "سامنت او سامند) يو لفظ معلوميږی . په دے بنا دا ډيره قرين قياس ده چه "سامند" او "سامنت" ديو سړی نومونه دی - او اکثر عالمان د "سامنته ديوا" مسکوکات د "سامند" مسکوکات ګڼي۔ د "سامنته ديوا" مسکوکات اکثر د افغانستان په جنوبی مشرقی حصو کښې او څه لږ ډير په شمالی هند کښې هم موندلی شوی دی - او دا په دے دلالت کوی چه ددهٔ سلطنت به د افغانستان په اکثرو جنوب مشرقی حصو او د شمالی هند په څه علاقه مشتمل وو - د "سامند يا سامنته ديوا" د زمانے تعين هم په يقينی ډول نهٔ دے شوے - البته دځنے محققينو په خيال د "سامند يا سامنتا ديوا" معنیٰ ښهٔ "شهسوار يا سپه سالار" ده - فرانسيسی محقق مسټر "فوشه" ددے خيال اظهار کوی چه يعقوب ليث صفاری په کابل کښې سپه سالار قيد او بيا ئے مسلمان کړو - "که چرے دا خيال درست اومنلے شی نو ددے په بنا به يعقوب ليث او "سامنته ديوا" هم عصر اوګڼلے شی -

دا خبره په تاریخي شواهدو معلومه ده چه کابل د یعقوب لیث په لاس په کال ۲۵۷ھ ـ ۸۷۰ء کښې فتح شوے وو. نو ددے پورته قیاس مطابق موږ دا وئیلے شو چه " سامنتا دیوا " د یعقوب لیث هم عصر او په ۸۷۰ء کښې د کابل حکمران وو. او ددے نه پس یا خو د یعقوب سره په جنګ کښې اووژلے شو. او یا د شکست نه پس مسلمان شو. د یعقوب لیث او ددے رتبیل (سامنته دیوا) د جنګ پوره تفصیل د " محمد عوفي " په جوامع الحکایات کښې موجود دے. دا واقعات په لنډ ډول داسے وو:-

وئیلے شي چه الله پاک یعقوب لیث ته لوئے همت ورکړے وو. چنانچه هغهٔ د خپل همت په برکت د عروج اوچتو پوړیو ته اوختلو او هرکله چه " صالح نصر " د هغهٔ د لاسه رتبیل ته اوتښتیدلو. نو امیرانو هغه په " رتبیل " باندے حملے او جهاد ته اوپارولو. او ورته ئے اووئیل چه اګرچه د " رتبیل " په مقابله کښې ستا فوځي طاقت کم دے. ولے په خدائے توکل اوکړه. او د چل هنر نه کار واخله. امید دے چه په د شمن به بریالے شے. بس یعقوب خپل ټول لښکر جمع کړو. چه د زرو کسو نه زیات نهٔ وو. او د رتبیل جنګ ته روان شو. او چه بست ته اورسید. نو د بست خلقو په یعقوب پورے ټوقے ټچموزے شروع کړے. او وئیل به ئے اوګوری د دے دومره معمولي فوځ سره د رتبیل مقابلے ته روان دے. بس یعقوب د هنر او مکر نه کار واخست. خپل دوه اعتباری امیران ئے د سفیرانو په ډول د رتبیل دربار ته اولیږل. او رتبیل ته ئے پیغام اولیږلو. چه زهٔ ستا په خدمت کښې حاضریدل غواړم. او دا م اراده ده چه ستا د پاره لوئے لوئے خدمتونه اوکړم. او دا ما ته معلومه ده چه زهٔ ستا د مقابلے نهٔ یم. ولے که خپلو سپاهیانو ته دا اووایم چه زهٔ ستا خدمت ته در روان یم نو دوئ به زما نه بغاوت اوکړی. او ما او زما دوستان به مړهٔ کړی. نو ځکه زهٔ دوی ته دا وایم چه زهٔ تا (رتبیل) سره جنګ ته در روان یم. ولے هرکله چه زهٔ تا ته دراورسم نو دوی به بیا خوامخواه زما ملګرتیا کوی:

" د یعقوب استازی چه رتبیل ته اورسیدل او دا پیغام ئے وراورسولو نو هغه ډیر خوشحاله شو. ځکه چه هغه د یعقوب د لاسه ډیر تنګ وو. هغهٔ د یعقوب استازی اونما ځل او د یعقوب په لورے د ډیرو ښیګړو او انعامونو د وعدو سره بیرته اولیږل. په بل لوری یعقوب به خپل لښکر ته دا وئیل چه دا استازی مے د جاسوسئ په غرض لیږلی دی. هر کله چه یعقوب د خپل لښکر سره رتبیل ته نزدو اورسید نو رتبیل صالح نصر رااوغوښت او ورته ئے اووے چه اوس د شمن د صلح په غرض راغلے دے نو موږ ته هم جنګ نهٔ دے پکار. او د یعقوب

د ملاقات تیارئ شروع کړے "۔

او د رتبیل به دا قاعده وه چه په اس به سور شو نو د هغهٔ تخت به فراشانو په اوګو اوچت اوړلو۔ او کله به هغه په تخت ناست فراشانو اوړلو۔ چه صفونه جوړ شول نو رتبیل په تخت کښیناست او د تخت دواړو غاړو ته د هغه فوځونه په قطار کښے او دریدل۔ دغه وخت یعقوب د خپلو درے زرو سورو سره تاخت راوړو۔ تورے ئے اوویستے او د زمکے په مخ ئے د وینو رودونه او بیول۔ کافرانو چه د رتبیل سر اولیدهٔ نو تیښته ئے اوکړه۔ په دغه ورځ ډیر قتل عظیم اوشو۔ او فتحه د یعقوب په نصیب شوه۔ او د یعقوب لاس ته دومره خزانے راغے چه وهم د هغے د تصور نه عاجز وو۔ او صالح نصر هم ملک زابلستان څخه په تیښته لاړ۔ او د هغهٔ لښکر د هغهٔ نه جدا شو او یعقوب ته راغے۔

د دے نه پس یعقوب د ملک زابلستان نه صالح نصر اوغوښت او هغهٔ صالح یعقوب ته وراولیږلو۔ او هغه (صالح) د یعقوب په قید کښے مړ شو۔ یعقوب د بُست په خلقو هم لویه جرمانه اولګوله۔ ځکه چه دے خلقو په یعقوب پورے پیغورونه کړی وے۔ او د یعقوب دا فتح د هغهٔ د مکر او چل بازئ نتیجه وه[1]۔

د جوامع الحکایات د دے قیصے نه موږ ته یو څو خبرے معلومے شوے۔ چه د هغے ذکر به بے ځایه نهٔ وی:۔

(۱) مونږ ته دا سے معلومیږی چه دا رتبیلان یا کابل شاهان د صفاریانو په نسبت د زیات جاه وجلال او شان و شوکت خاوندان وو۔ د دوی فوځی طاقت هم زیات وو۔ ځکه خود بُست خلقو د یعقوب د زرو یا درے زرو سپاهیانو سره د رتبیل مقابلے ته په تلو په هغهٔ پورے ټوقے مسخرے کوُلے۔ او د یعقوب داکامیابی هم د هغهٔ د چالبازی نتیجه ده۔

(۲) د دے قصے نه دا هم معلومیږی چه د هیرمند د منطقے خلقو د کابل شاهانو سره مینه او دلبستګی لرله۔ او د رتبیل شاهانو د نفوذ او اثر دائره د سیستان پورے خوره وه۔ چنانچه د فتحے نه پس د کابل شاه د طرفدارئ په نتیجه کښے یعقوب د بُست په خلقو لویه جرمانه اولګوله۔

(۳) د دے قصے نه دا هم معلومیږی چه کابل شاهانو د خپلو ملکی مسلمانانو سره دوستانه روابط لرل۔ لکه چه صالح نصر د یعقوب د لاسه د رتبیل سره پناه ګزین شوے وو۔

(۴) ګرچه د یعقوب او د سامنه ترمینځه د دے جنګ مقام په یقینی ډول

---

[1] جوامع الحکایات ۱۶۰-۶۱ (قلمی)۔ په حواله د تاریخ افغانستان جلد دوم ص۵۵۸

نهٔ معلومیږی. ولې څه رنګ چه د دے قصے نه فهم کیږی. د دے جنګ مقام نهٔ خو بُست نهٔ "الرخج" او نهٔ زابل وو. بلکه د غزنی او کابل تر مینځه یو ځائے وو. او په اکثرو احتمالاتو د جنګ میدان د صدر مقام نه لرے هم نهٔ وو. ځکه چه رتبیل د تخت د پاسه فراشانو د جنګ میدان ته بوتلے وو.

په هرحال د دے جنګ نه پس د کابل په اهمیت کښے فرق راغے او د هندو شاهانو د سلطنت صدر مقام د کابل نه "اوده بهانده" یعنی اوهند یا ویهند (هنډ) ته منتقل شو. ولې په اکثرو احتمالاتو کابل د دے نه پس هم آباد وو. او د برهمن شاهانو د تاج پوشئ رسم به د دے ښار په یو معبد کښے ادا کیدلو.

**کملو یا کلمو:-** د البیرونی د ترتیب مطابق د کابل شاهانو په سلسله کښے دا دریم باچا دے. د مسکوکاتو نه دا نامه نهٔ معلومیږی. کملو یا کلمو د جوامع الحکایات (محمد عوفی تالیف) مطابق د عمر لیث چه د یعقوب لیث وروروو. هم عصر وو. د یعقوب لیث نه پس عمرد کال ۸۷۹ء نه تر ۹۰۰ء پورے حکمران وو. نو موږ دا قیاس کولے شو چه کملو به هم د "سامند" په مرګ تخت نشین شوے وی. او د دے نه دا قیاس هم مرسته مومی چه "یعقوب لیث" او "سامنتا دیوا" به هم هم عصر وو. نوموړے لیکوال د غه بادشاه د "راۓ هندوستان" په نامه هم یادوی. او داسے وائی چه عمرلیث صفاری د "زابلستان" په حکومت "فردعان" او ټاکلو. او ډلور زره لښکرۓ ورسره کړو. په دغه وخت په "سکاوند" کښے د هندوانو یو لوۓ معبد وو. چه د هندوستان د علاقے هندوان به هم د دے معبد د بتانو زیارت ته راتلل. نوهر کله چه "فردعان" "زابلستان" ته راغے نو په "سکاوند" ۓ حمله اوکړه. او د دے ځائے د دغه مشهور معبد بتان ۓ ټول ریزمریز کړل. او بت پرستان ۓ اووژل او د غنیمت مال ۓ څه فوځیانو ته ورکړو. او څه ۓ عمرلیث ته اولیږلو. او د دغهٔ نه ۓ نور فوځی امداد هم اوغوښتلو. د "سکاوند" د سکوت نه چه "کملو" خبر شو چه هغه "راۓ هندوستان" وو. نو د یو لوۓ لښکر سره د زابلستان په لور روان شو. او "فردعان" چه د کملو د فوځ کشئ نه خبر شو نو یو څو جاسوسان ۓ د هندوستان په لور اولیږل. او هغوی د کملو لښکرګاه ته لاړل او هغوی ته ۓ اووئیل چه کوم وخت فردعان "سکاوند" او ولو. نو نور فوځونه ۓ هم رااوغوښتل. او د هغهٔ سره د مسلمانانو دومره لښکر جمع شوے دے چه د اطرافو په مزکه نهٔ ځائیږی. او په دوی پسے د عمرلیث فوځونه هم راروان دی. او دوی دا اراده کړی ده. چه تاسو په درو او ذوبرو نو کښے راګیر کړی. او ټول اووژنی. "کلمو" چه دا خبرے واوریدے

نو خپل رفتارته سست کړو - په دے دوران کښے « فردعان » ته د خراسان نه نورمدد رااورسيده - او « کلمو » [1] دوی سره د مقابلے توان او نه لیدو - او په دے چل فردعان کامیابی حاصله کړه [2].

د کملو او فردعان په دے قصه کښے يو څو خبرے د فکرو ړ دی يعنې :-

(۱) د دے نه دا واضحه شوه چه کملو یاکملو د عمرلیث صفاری (۲۶۵-۲۸۷ھ / ۸۷۹-۹۰۰ع) معاصر وو.

(۲) دکابل شاهانو صدر مقام ویهند ته منتقل شوے وو - او چونکه د کابل شاهانو په سلطنت کښے دا با سیند نه په مشرق دهم څنے علاقے شاملے وے - په دے وجه محمد عونی دهغه د « رائے هندوستان » په لقب يادکړے دے.

(۳) دغه وخت کښے د زابلستان (د غزنی او کابل علاقے) علاقه چه د يعقوب ليث په وخت کښے فتح شوی وے - د صفاريانو په سلطنت کښے شاملے وے ځکه عمرلیث دزابلستان په حکومت « فردعان » مقرر کړے وو.

(۴) سکاوند [2] يعنے لهوګر او دافغانستان جنوبی او مشرقی علاقے لا دغه وخت يعنې د نهمے صدی پورے د هندو شاهانو په سلطنت کښے شاملے ګڼلے شوے - لکه چه د سکاوند د فتحے نه داخبره څرګنده ده.

(۵) د برهمن شاهانو قوت او اقتدار دغه وخت هم دومره زيات وو - چه صفاريانو به د دوی مقابله په چل ول کوله.

(۶) د هندوانو لوئے معبد چه د هندوستان هندوانو د پاره هم متبرک وو - په سکاوند کښے وو - دغه وجه ده چه لوګر او دلوګر سيند تراوسه دکابل د هندوانو په نظر کښے زیاب اهمیت لری.

(۷) په دغه وخت کښے په خراسان کښے اسلام ترکافی حده خور شوے وو.

(۸) **بهمیه یا بهمیه پاله :-** د کابل شاهانو د سلسلے غلورم باچا د البیرونی د ترتیب مطابق ... بهمیه يا بهمیه پاله دے - چه په مسکوکاتو کښے « بهمیه دیوا » ظاهر شوے دے. دده ... مسکوکات دکابل د علاقے نه موندلی شوی دی - چه ډيرکمیاب دی - او په دے دلالت کوی چه دده په وخت کښے د کابل شاهانو تسلط د کابل د علاقے نه پوره پوره شوے وو - د بهمیه دیوا د زمانے تعین په اکثرو احتمالا تو د ۵۸-۹۵۰ء ترمينځه مينځه کيږی.

---

[1] جوامع الحکایات قلمی په حواله د تاریخ د افغانستان جلد دوم ص ۵۶۳

(۲) سکاوند یا شجاوند د وادی لوګر ترمينځه د التیمور درے سره نژدو واقع دے.

**وکا دیوا:** - د البیرونی په فهرست کښې دا نامه نشته - البته ددهٔ د نامے مسی مسکوکات عام موندلے شوی دی -

**کمهاریا کا دیوا:** - ددهٔ نامه هم البیرونی نهٔ ده ذکر کړی - ددهٔ د نامے مسکوکات ډیر کمیاب دی - او دا سے معلومیږی چه دهٔ به شاید اسلام قبول کړے وی -

د البیرونی د لیکنو مطابق د دے سلسلے مشهور باچایان جے پال او انند پال دی - چه د غزنوی بادشاهانو سره د جنگونو په وجه ئے ډیر شهرت موندلے دے - ولے دا ډیره د هیرانئ خبره ده چه د دوی د نامے مسکوکات چه د دے سلسلے د معلوے تاریخی زمانے بادشاهان دی - تراوسه نهٔ دی موندلی شوی - په خلاف د سامند یا سامنته دیوا چه د دے خاندان دویم بادشاه تیلے شی - بے شمیره مسکوکات موندلی شوی دی - د دے وجه شاید چه دا وی چه د سامند جانشینو به په خپل خپل وخت کښې هم ددهٔ د نامے مسکوکات جاری ساتلی وی - او د خپلو نامو مسکوکات به ئے نهٔ وی ضرب کړی - او یا به ئے په کم شیر کښې ضرب کړی وی -

دا خبره د یادولو ده چه څه رنګ د افغانستان اوکند هارا د قدیم تاریخ په لړ کښې د مختلفو پخوانو بادشاهی خاندانونو د حالاتو په مرتب کولو کښې د هغوی د مسکوکاتو نه ډیر مدد اخیستے شوے دے - او د دے زمکے د قدیم تاریخ ډیرے خلاګانے هم د مسکوکاتو نه حاصل شوی نتایجو ډکے کړې دی - دغه شان د کابل شاهانو د مسکوکاتو نه هم د دے خاندان د سلطنت، د دوئ د مذهب، جنګی طریقو او فوځی شان شرکت وغیره معلوماتو په باب کښې مدد اخستے شوے دے - اګرچه د دے خاندان د مسکوکاتو په حقله ډیر کم معلومات موجود دی - ولے څه لږ ډیر معلومات چه حاصل شوی دی هغه په دے ډول دی:

د هندو شاهانو مسکوکات عمومًا د افغانستان په جنوبی شرقی حصو اوګند هارا نه خصوصًا د هنډ د خوا وشانه موندلی شوی دی - دا په دے دلالت کوی چه هنډ د دے بادشاهانو عسکر مقام پاتے شوے دے - د دوی مسکوکات د اباسیند په څنګ شرقی علاقو کښې هم موندلے شوی دی - او دا علاقے هم د دوی په سلطنت کښې شاملے وے - د دوی دا مسکوکات عمومًا په درے قسمه دی:-

(۱) یو هغه قسم مسکوکات دی چه د سکے په یو مخ بادشاه په اس سور دے - او د سکے په بل مخ د غوایه تصویر دے - (۲) بله نمونه مسکوکات هغه دی چه د سکے په یو مخ بادشاه په اس سوراو په بل مخ د هاتی یا امزری تصویر دے - او (۳) هغه مسکوکات دی چه په یو مخ بادشاه په

اس سوراو په بل مخ دامزري او طاوس تصویرونه دي.

د دویم قسم مسکوکات چه د سکې په یو مخ بادشاه په اس سوراو په بل مخ دهاتي یا امزري تصویرلري. د دې بادشاهانو (یعنې «سري سامنته دیوا» «سري بارام‌ا» او سري وکا دیـوا») سره تعلق لري. د سامنته دیوا مسکوکات اکثر «مسي» او د سپینو زرو دي. او ډیر زیات موندلي شوي دي. د دهٔ په یو سکه باندې بادشاه په اس سور خود په سر زغره اغوستې نیزه په لاس او په بل مخ دغوایه تصویر دې. چه د دې خاندان د «شیوا» پرستي مرسته کوي. د دې مسکوکاتو نه دا قیاس مرسته موې چه د دې بادشاهانو به د جنګ په وخت کښې د خپلو فوځونو قیادت پخپله کولو.

دا خبره هم د ډیر تعجب ده چه عباسي خلیفه «المقتدر» (۳۲۰-۲۹۵) بید و هم د دې د کابل شاهانو د مسکوکاتو په نمونه خپل مسکوکات ضرب کړي دي. صرف د دهٔ نامه په عربئ کښې لیک ده. دا د دې خبرې یو واضح ثبوت دې چه د مسلم بادشاهانو په نظر کښې د دې سلسلې باچایان د لوئې اهمیت خاوندان وو. او د دوی مسکوکاتو د هغوی په نظر کښې ډیر جاذبیت او اهمیت لرلو.

د کابل شاهانو د مسکوکاتو تقلید په وروستو زمانه کښې د غورشاهانو په مسکوکاتو کښې هم څرګند دې. البته په دې مسکوکاتو کښې داس او غوایه تصاویر وروورو د عربي رسم الخط په پیچ وخم کښې بدل شوي او بیاآخرته د مینځ نه وتلي دي.

# هندوشاهان او پښتانه

دا خبره ډېره قابل افسوس ده چه د هندوشاهانو د سلطنت دا اوږده زمانه د پښتنو د تاريخي حالاتو په باب کښې بېخي شنډه ده. دا خو ظاهره ده چه پښتانه قبائيل هم دغه علاقو استوګن وو او هم د دغه کابل شاهانو رعيت وو. ولې د پښتنو په باب هونه په معاصرو تاريخونو کښې څه او ليدل او نه د مسکوکاتو نه د دوئ په باب کښې څه معلومات په لاس راغلل. په دې کښې څو شک نشته چه د کابل د سقوط نه پس هم د ننګرهار، د خيبر نه په قبله علاقو کښې او د وادئ ګندهارا په زمکه ديوو لسې صدئ تر آغازه هم دغه هندوشاهانو حکومت وو. او د پښتنو هغه قبائيل چه د کابل او پېښور تر مينځه علاقو کښې مېشته وو[1]. د دې بادشاهانو په سلطنت کښې شامل وو. دا بادشاهان به په خپله هم او د دوئ د حکومت اهلکاران به هم د هغه لارو نه او د هغه لارو په غاړو او مورګو ابادو پښتنو قبائيلو نه خواه که د خيبر په لاره وو او که د جنوب په لورې د کرمې په لار او که د قطب په لور د کونړ، باجوړ او تالاش بلکه د سوات پورې په ښه شان خبردار وو. دا حقيقت چه سوات، هم د هندوشاهانو په حکومت کښې شامل وو. د جې پال ديوې کتيبې نه معلومېږي چه په سنسکرت ژبه او ساردا رسم الخط کښې ليک ده او د سوات د "بري کوټ" نومې مقام نه موندلې شوې ده ظاهرېږي. چه دې کتبه کښې د جې پال نوم د شاه اعلىٰ، شاه شاهان، اعليحضرت سري جې پاله ديوا په الفاظو ذکر دې. ولې د بله مخه د دې علاقې د خلقو د اصل نسل، مذهب، ژبې، ژوند ژواک او د ژوند د لاروچارو کم ازکم د پښتنو قبائيلو د نومونو او يا د سلطنت د نورو معاملاتو په حقله هيڅ معلومات په لاس نه راځي. بلکه د حکمران خاندان تفصيلي او يقيني حالات هم معلوم نه دي. تر دې چه د جې پال (چه د آل ناصر سره د جګړو په وجه ډېر مشهور دے) جلوس کال هم معلوم نه دے. او دا حال يوازې د هندوشاهانو نه بلکه تر دغه وخته چه د دوئ نه وړاندې هرڅومره نور شاهي خاندانونه او حمله آور قامونه په دې زمکه راغلي او تېر شوي دي. د هغوي ټولو حالات نيمګړي نامکمل او اکثر د مسکوکاتو په جزوي شها دتونو مبني دي. په دا سې حالاتو کښې د پښتنو په باب کښې د څه تفصيلي او يقيني معلوماتو طمع ساتل عبث خبره ده. او دا يو حقيقت دے چه د سکندر اعظم نه پس د بابر تر زمانې پورې د اتلسو سوو کالونو دا اوږده زمانه د پښتنو د تاريخ يوه تاريکه او د تاريخي معلوماتو له مخه يوه شنډه دوره ده.

---

(۱) دا خبره دا البيروني د ليکونو نه ظاهره ده. دا بناغله ليکوال د لسې صدئ په شاوخوا کښې د آبا سيندنه وا خلې د کابل د خواو شا ... پورې علاقو کښې د افغان قبائيل يادوي. او دا سې وائي چه دا خلق ډېر سرکښ، سرتېره زيږ او هندو مذهب دي.

# دغزنویانو دوره

د صفاریانو او کابل شاهانو په ذکر کښې مو په تیرو پاڼو کښې دا اووئیل چه «کابل» د یعقوب لیث صفاری په لاس په (سنه ۸۷۰ء) کښې فتح شو - او لوګر علاقه د هغهٔ د ورور عمرلیث په وخت (سنه ۹۰۰-۸۷۹ء) کښې چه دغه وخت د کابل شاهانو په سلسله کښې کملو یا کمو باچا وو. د صفاری سلطنت په قبضه کښې راغله - ولې د صفاریانو د زوال په نتیجه کښې د کابل او زابل په علاقو د سامانیانو اقتدار قائم شو - اګرچه د دوی دا اقتدار نه خو ډیر محسوس شو او نهٔ ډیره موده پاتې شو - په کال سنه ۹۶۰ء کښې د منهاج السراج د وینا مطابق «ابوبکر لاویک» د سامانی حکومت له خوا په «غزنه» کښې د زابلستان او کابل حکمران وو - هم په دغه کال الپتګین نومې یو ترکی امیر چه د سامانی دربار له خوا د خراسان د فوځونو قوماندان وو - په یو جنګ کښې د ابوبکر لاویک نه غزنې فتح کړو - او په دې ډول په غزنی یو نوې سلطنت تشکیل شو - د دې وخت نه وروستو د غزنویانو او کابل شاهانو ترمینځه د جنګونو یو نوی سلسله شروع شوه - چه د هغې په نتیجه کښې د کابل شاهانو سلطنت سقوط بیا موندهٔ - د کابل شاهانو په کورنۍ کښې «جے پال» د آل ناصر سره په جنګونو کښې ډیر شهرت حاصل کړے دے - امکان لری چه دے به د الپتګین د فتح غزنی سره سم او یا د دے نه څه وړاندې وروستو تخت نشین شوے وی -

د صفاریانو او سامانیانو د سلطنت مرکزونه د کابل شاهانو د مرکز سلطنت «ویهند» نه سنهٔ کافی لرے - د غرب او شمال په لور واقع وو - او کابل شاهانو به د خپل سلطنت څه حصه چه د اباسیند نه په قبله وه د خپل دے مرکز «وهند» نه په سنهٔ شان اداره کولے شوه - هرکله چه الپتګین په غزنی کښې د یو نوی سلطنت بنیاد کیښود نو د کابل شاه» د پاره دا خبره ضروری شوه چه خپل مرکز سلطنت په یو داسې مضبوط مقام کښې قائم کړی چه هغه د غزنی نه سنهٔ کافی لرے او په هر لحاظ محفوظ وی - چنانچه «راجه جے پال» خپل مرکز سلطنت د «ویهند» نه بټهنډے ته منتقل کړو - چه د ستلج سیند په غاړه یوه مضبوطه قلا وه - د فرشتې د وینا مطابق د جے پال سلطنت د سرهند نه تر لمغانه او په پلن والی د کشمیر نه تر ملتان رسیدلے وو - الپتګین په

سنہ ۹۶۰-۶۱ کښې د ابوبکر لاویک نه چه د سامانی بادشاه منصور د لوری نه د غزنی حاکم وو۔ غزنے فتح کړے وو۔ او اګرچه په دغه وخت کښې په غزنی کښې لا د "آل ناصر" حکومت نهٔ وو قائم شوے ولے د دے باوجود دجے پال او سبکتګین د نبرد آزمایښ د پاره میدان هم د دغه وخت نه تیار شو۔

په دغه ورځو کښې دجے پال د پاره یواځے د غزنی د نوی سلطنت خطره نهٔ وه پیښه شوی بلکه په دغه ورځو کښې د هغه پښتنو قبائیلو کوم چه د اباسیند او لمغان په مینځ کښې آباد وو۔ تعلقات دجے پال سره هم ډیر خراب شوی وو۔ امکان کیدے شی چه د مرکز سلطنت په دے انتقال به د پښتنو سرکښی نوره هم زیاته شوی وی۔ او هغوی به د راجا په علاقو حملے شروع کړی وی۔ لکه چه د دے قیاس مرسته د "فرشتے" نه هم کیږی۔ فرشته وائی چه په دغه ورځو کښې دجے پال او پښتنو قبائیلو ترمینځه په پنځه میاشتے کښې او یا جنګونه اوشول۔ ممکنه ده چه دا جنګونه به د مقامی حیثیت او معمولی نوعیت وو۔ بهرحال جے پال په دے واقعاتو ډیر پریشان وو۔ چه په دغه وخت کښې د پنجاب "کهوکهرانو" هم دجے پال سره مخالفت شروع کړو۔ او پښتنو د کهوکرانو مرسته اوکړه۔ د پښتنو او کهوکهریانو دا اتحاد د جے پال په حق کښې ډیر خطرناک وو۔ نو هغهٔ د پښتنو سره روغه اوکړه۔ او د لمغان په علاقه کښې ئے د پښتنو سیادت په دے شرط تسلیم کړو۔ چه دوی به په پنجاب باندے د غزنوی او سامانی بادشاهانو د حملو مدافعت کوی۔ او د کهوکهرانو په معاملاتو کښې به مداخلت نهٔ کوی۔ شیخ حمید لودی یو بااقتداره پښتون د دے علاقے جائز سربراه او منلے شو۔ او دغه شان د لودی پښتنو د عروج آغاز هم د دے وخت نه اوشو۔

لکه چه مو اوئیل الپتګین چه په غزنی کښې یو نوے سلطنت تشکیل کړے وو۔ نو د هغهٔ د پاره د خپل سلطنت د توسیع په لړ کښې د کابل شاهانو سره د زور آزمائ او جنګونو نه بغیر بله لار نهٔ وه۔ ولے د هغهٔ په لار کښې یواځے د کابل شاه فوځی طاقت نهٔ وو۔ بلکه هغه پټانهٔ قبائیل هم وو کوم چه د خیبر په دوارو غارو آباد وو۔ او د دے پښتنو قبائیلو سره جے پال اتحاد کړے وو۔ د غه وجه وه چه د الپتګین د پاره د دے متحده طاقت مقابله ګرانه معلومیده۔ او ددهٔ په وخت کښې د غزنی د لوری نه په جے پال څه بلو څه او نهٔ شوه۔ الپتګین په سنہ ۱۹۶۳ء کښې وفات شو۔ او د هغهٔ په ځائے د هغهٔ ځوئے اسحاق تخت نشین شو۔ او په هغهٔ پسے بلګا تګین او بیا په هغهٔ پسے پیری تګین د بخارا د سامانی حکومت د ګورنرانو په ډول د غزنی حاکمان وو۔ دوی هسے په نوم خود سامانی حکومت ماتحت وو۔ ولے عملاً خود مختاره وو۔

لیکن په دوی کښې یوهم د یو سلطنت د چلولو اهلیت نهٔ لرلو. آخر په کال ۹۷۷-۹۷۶ء کښې سبکتګین چه د الپ تګین زوم وو د غزنی په تخت جلوس اوکړو. او د غزنوی خاندان بانی وګرزید.

د غزنویانو د دورے د آغاز سره موږ د پښتنو د تاریخ په هغه دور کښې داخلیږو چه په هغې کښې پښتون قام د یو موثر او فیصله کن طاقت په حیثیت څرګند دے. د هغه دور دے چه په دے کښې اکثر پښتانهٔ په مجموعی لحاظ سره اسلام ته راګرځیدلی دی. او بیا وروستو د یو عظیم سلطنت په قائمولو کښې هم کامیاب شوی دی. اګرچه د دوی سلطنت په خپل وطن کښې نهٔ وو. بلکه د افغانستان د نورو قامونو په شان دوی هم په هند کښې سلطنت قائم کړو. د پښتنو د تاریخ دا دور عموماً په دوو حصو کښې تقسیمیږی. د دے دور یوه حصه هغه ده چه د هغې آغاز د غزنی په تخت د سبکتګین د جلوس (۹۷۷ء) نه او اختتام ئے د شهاب الدین غوری په وفات (۱۲۰۶ء) شوے دے. د دے دور دویمه حصه هغه ده چه د چنګیز خان د لاسه په افغانستان کښې د غوری خاندان د زوال (۱۲۲۰ء) نه شروع کیږی. او د بابر له خوا د فتح هند (۱۵۲۶ء) سره ختمیږی.

په وړومبی دور کښې چه تقریبًا په دوو سوو کالونو مشتمل دے. د طاقت مرکز په غزنی کښې وو. دا ښار د پښتنو د علاقے په مرکز کښې آباد وو. او په اوله کښې د غزنویانو او بیا د غوریانو د سلطنت صدر مقام وو. د دے دور د ابتدائی عرصے حالات البیرونی او د محمود درباری مؤرخ «العتبی» لیکلی دی. په دویم دور کښې چه تقریبًا په درے سوو نو کالونو مشتمل دے. د پښتنو د طاقت مرکز په هند کښې اکثر په دهلی کښې او کله کله په نورو اطرافو کښې وو. په دے دوره کښې هغه وطن چه اوس ورله افغانستان وئیلے شی. د چنګیز خان او د هغهٔ د اولاد د خونړو حملو په نتیجه کښې تباه شو. د تباهی دا افغانستان د قدیم تاریخ په لړ کښې نا قابل تلافی ګڼلے شی. د چنګیز خان حملو د دے ملک د پخوانی شاندار دور ټول آثار وران و برباد کړل. ښارونه تباه شول. باغونه شاړ شول. نهرونه او بندونه وران شول. او په ټول ملک کښې ئے د تباهئ یو داسے سیلئ راوستله چه ترمودو مودو پورے په دے خطه کښې د یو باضابطه او منظم حکومت قیام ئے ناممکن کړو. دا حالت د پنځلسمے صدئ پورے قائم وو. په دغه وخت کښې د تیمور اولاد په دے خطه کښې په مختلفو علاقو کښې سلطنتونه قائم کړل. او په ملک کښې څه ضبط و نظم قائم شو. او ترڅه حده د هغهٔ تیرو نقصاناتو تلافی اوشوه.

ولے په دے دواړو دورونو کښې پښتانهٔ د یو مؤثر او نمایان حیثیت .... وندان وو. په اوله حصه کښې دوی د یو عظیم داو طلبه فوجی طاقت په شکل کښې د هغه مسلمان بادشاهانو ملا

تړاو ځنې وے۔ کوموچه به په هند حملے کولے ۔ او د دے حملو په وجه پښتانۀ د هند سره متعارف شول ۔ په دوهم دور کښې دوی د هند د باقتداره بادشاهانو حیثیت اوموند لو۔ ولے په دے اوږده موده کښې چه په هند کښې پښتانۀ ډیرمؤثر طاقت خاوندان او حکمران وو۔ د دوی خپل اصلی وطن ډیرمنظم او منضبط حکومت نه خالی وو۔ او په دے ملک کښې د طوائف الملوکی حالت وو۔ په دے عرصه کښې نۀ خو د هند دے پښتنو بادشاهانو داکوشش کړے وو چه په خپل وطن کښې هم خپل حکومت قائم کړی ۔ او نۀ د خوااوشا نورو قامونو دا جرأت کړے ووچه پښتانۀ په خپل حکومت کښې راولی ۔ په دے زمانه کښې د پښتنو اصلی وطن په هند کښې د ،، روه ،، په نامه مشهور وو ۔ او د هند پښتنو بادشاهانو به دغه خپل وطن د جنګی ځوانانو یو منبع ګڼلو۔ او د دوی په نظر کښې د دے وطن اهمیت بس دومره وو چه د ضرورت په وخت کښې د دے علاقو نه یو نۀ ختمیدونکے داؤطلبه فوځ مرتب کړی ۔ او د خپل هندی سلطنت حفاظت پرے اوکړی ۔

لکه چه مو اووئیل د پښتنو د سیاسی عروج آغاز د غزنویانو د دورے د اغازنۀ کیږی د غزنوی خاندان بانی سبکتګین وو۔ چه د الپتګین زوم وو۔ نوموړی په ۳۶۶ھ کښې د غزنی په تخت جلوس اوکړو۔ او د جلوس نه پس په اولنۍ دووکالونو کښې ئے د بُست او ،، قصدار،، ښارونه فتح کړل ۔ اوبیا ئے د خپل سلطنت د توسیع په غرض په یولور د کابل شاهانو سره جنګونه شروع کړل ۔ او په بل لورئے د سامانیانو نه د خراسان شمالی علاقے اونیولے۔ دغه وخت سامانی حکومت ډیرکمزورے شوے وو۔ دغه وجه ده چه د بخارا ربار د سبکتګین د غزنی جائز والی اومناو او دغه شان د سبکتګین د اخلافو قبضه په غزنی باندے اخلاقاً او قانوناً جائز او منلے شوه ۔ او د هغهٔ جانشین محمود د دے قابل شوچه د سامانیانو په نسبت یو وسیع او فراخ سلطنت تشکیل کړی ۔ سامانی حکومت په ۹۹۹ئ کښې سقوط اوموند ۔

سبکتګین یو هوښیار او مدبر سړے وو۔ د هغه د وړاندے د وادئ کابل او ګندهارانه د کابل شاهانو د سلطنت ختمول وو۔ ولے په هغهٔ کښې لا دومره طاقت نۀ وو۔ چه په یو وخت ئے د پښتنو او کابل شاه (جے پال) مقابله کړے وے۔ په دے غرض سبکتګین د پښتنوسره د رواداری او انسانیت سلوک شروع کړو۔ او د دے نتیجه دا شوه چه د مؤرخ ،، العتبی ،، د وینا مطابق په زرګونو پښتانۀ (خلج او افغان) د هغهٔ په فوځونو کښې شامل شول ۔ او په ډیر اخلاص او جان نثاری ئے د هغهٔ خدمت ته ملا اوتړله۔ شیخ حمید لودی هم د سبکتګین سره موافقت اوکړو۔ او سبکتګین د هغهٔ سره د ،، ملتان ،، د حکومت وعده اوکړه۔ او هرکله

چه ملتان دجے پال نه فتح کړے شو۔ نو لهغه شیخ حمید لودی ته ورکړے شو۔ د پښتنو د دے موافقت په وجه سبکتګین دجے پال سره د زورآزمائۍ قابل شو۔

چه د سبکتګین او پښتنو د موافقت په وجه د غزنی دربارته په کابل شاهانو د حملے لار اوزګاره شوه۔ او جے پال هم د حالاتو رُخ بدل اولید۔ نو لهغهٔ د سبکتګین د زورماتولو په غرض د وړاندے نه په غزنی باندے د حملے په غرض راروان شو۔ سبکتګین چه د حالاتو نه خبر شو نو لهغهٔ هم دجے پال د مقابلے په غرض د غزنی نه راووتلو۔ دجے پال دا پیش قدمی په سیاسی او فوځی اغراضو مبنی وه۔ د لهغهٔ دا خیال وو چه د غزنی دربار ته د چا د مدد ورکولو څه ذریعے نشته۔ بل طرف ته دجے پال په مرسته د هند و راجګانو طاقت موجود وو۔ او په دے کښے شک نشته چه که جے پال په دے جنګ کښے کامیاب شوے وے۔ نو د مغرب د لوری نه به په هند باندے حملے د څه مودے د پاره اتالے شوے وے۔ ولے دا سے او نهٔ شوه۔

دجے پال او سبکتګین دا جنګ د "غورک" په کنده کښے شوے دے۔ احتمال لری چه دا "غوږک، یا "غوزګ" به لهغه ځائے وی چه اوس ورله تنګ غارو ویلے شی۔ او د لمغان او جلال آباد په لار کښے واقع دے۔ د دے ځائے یخنی او برفباری د هندوستانیانو د پاره ناقابل برداشت ده۔ لکه څه رنګ چه په ۱۸۴۲ء کښے انګریزی او هندوستانی فوځونه په دے علاقه کښے د برفباری، بارانونو او سختے یخنۍ د لاسه تباه شوی وو۔ دغه رنګ په دے موقع هم دجے پال د شکست باعث برفباری، بارانونه، او سخته یخنی وه۔ د هندوانو د شکست په اسبابوکښے د یوے چینے ذکر هم دے۔ یعنی دا مشهوره ده چه په دے علاقه کښے یوه چینه وه چه په هغے کښے به ګندګی او غورزولے شوه نو زول، طوفان او بارانونه به شروع شول۔ په دے موقع سبکتګین هم دا کار کړے وو۔ ځکه د هندوانو فوځ د زول طوفان په وجه تباه شو۔ به هرحال دا روایت خو نسے افسانه ده۔ لیکن دومره خبره صفا ده چه دجے پال د شکست اسباب برف باری او دغه قسم قدرتی حوادث وو چه په هغے دجے پال ته هم، نهٔ رسیدو۔ او سبکتګین لهغهٔ ته په خپل فوځی طاقت شکست نهٔ دے ورکړے۔

غرض د دے جنګ په نتیجه کښے جے پال د سبکتګین سره په صلح مجبور شو۔ اګرچه محمود د دے صلحے برخلاف وو۔ خو صلح اوشوه۔ جے پال پنځوس هاتیان اولس لکه تاوان جنګ ورکول، او د خپلو شمالی قلاګانو نه ئے دست برداری اومنله۔ او د ضمانت په دول ئے خپل یو څو سرداران د سبکتګین سره پرینبودل۔ او د سبکتګین سرداران ئے د ځان سره د تاوانِ جنګ رقم ورکولو په غرض۔ ولے کوم وخت چه خپل مرکز ته اورسید نو بے لوظه شو۔ او د سبکتګین سرداران ئے بوتلل

قید کړل. دا یو داسې خبره وه چه په هر لحاظ د اخلاقو نه منافي وه. د دې جنګ باعث په خپله جې پال وو. هغهٔ پیش قدمي کړې وه. او سبکتګین د هغهٔ په مدافعت مجبور شوې وو. چنانچه د دې وعده خلافۍ د سزا ورکولو په غرض سبکتګین یو ځل بیا د جې پال په جنګ را روان شو. جې پال د وړاندې نه هم زیاتو فوځونو سره مقابلې ته راغ. د دې جنګ مقام معلوم نهٔ دې. احتمال لري چه دا جنګ به چرته د ننګرهار په علاقه کښې شوې وي. په دې جنګ کښې هم جې پال شکست اوموندو. او د خراج په ادا کولو ئې ځان خلاص کړو. د دې نه پس د لمغان او ننګرهار علاقې د غزنۍ په سلطنت کښې شاملې شوې (سنه ۹۸۶ء)

سبکتګین په کال سنه ۹۹۶ء کښې د (۵۶) کالو په عمر کښې په "ترمذ" نومې کلي کښې چه د بلخ په علاقو کښې دې وفات شو. او د هغهٔ ځوی اسماعیل چه د الپتګین نمسې وو. د هغهٔ جانشین شو. په دغه وخت کښې محمود د خراسان ګورنر او په نیشاپور کښې وو. سبکتګین یو عادل زړهٔ سواندې، زړور او د شریعت پابند سلطان وو. د هندوستان د فتوحاتو دروازه د نوی سر نه هغه بیا پرانستله.

**سلطان محمود غزنوی:-** سلطان محمود غزنوی په هغه خوش نصیبه بادشاهانو کښې شامل دې کوم چه د خپلو لوړو کارنامو له کبله یواځې دا نه چه په اسلامي تاریخ کښې مشهور دې، بلکه د دنیا په تاریخ کښې هم د شهرت لویه برخه لري. نوموړې سلطان په سنه ۹۹۹ء کښې د غزنۍ په تخت کښیناست. او د خلیفه بغداد د لورې نه هم په خلعت او سلطانۍ په خطاب اونمانځلې شو. د دهٔ مور د زابلستان د علاقې د یو سردار لور او پښتنه وه. د دغه وجه ده چه د دهٔ توجه پښتنو ته زیاته وه. محمود اګرچه د پلار د لورې نه نسلاً ترک وو. ولې د خپلو لوړو کارنامو له کبله پښتنو د... یو مقامي لیډر او مشر په ډول قبول کړو. او څه رنګ چه د دهٔ د پلار سبکتګین خدمت ته پښتنو په جان نثارۍ او اخلاص ملا تړلې وه. د دغه شان ئې بلکه د هغې نه هم په زیات اخلاص د محمود د مقاصدو مرسته اوکړه. د محمود د تخت نشینۍ په وخت کښې د غزنۍ ریاست د یو معمولي حیثیت ریاست وه. ولې د دهٔ د ژوند په آخري کالونو کښې د غزنۍ سلطنت په یو عظیم سلطنت کښې بدل شو. د دهٔ په سلطنت کښې د قبلې په لور د موجوده ایران یوه لویه برخه د شمال په لور د رود آمو نه په هغه خوا د بخارا پورې علاقه او د نمر ختهٔ په لور د ستلج سیند پورې خطه شامله وه.

محمود غزنوی د خپل سلطنت په وخت کښې د سنه ۹۹۹ء او د سنه ۱۰۲۶ء ترمینځه مینځه په هندوستان باندې دولس یا اوولس حملې کړې دي. دا خبره چه د محمود غزنوی اکثر فوځونه

په پښتنو مشتمل وو. د « العتبی » د تحریرونو نه معلومیږی . د بلخ د مهم په باب کښې دے وائی چه دا مهم محمود غزنوی د پښتنو (خلج و افغان) په مرسته سرکړے وو. هم په دے ډول د « ناردین » په معرکه کښې د پښتنو د شرکت ذکر په دے الفاظو کوی . په معرکه « ناردین » کښې د هندوانو قوت ډیر زیات وو. محاصره اوږده شوه نو سلطان د پښتنو نه د جهاد په ډول د کومک خواست اوکړو . او دوی د هغهٔ په کومک اودریدل . پښتانهٔ د هندوانو سره اوجنګیدل . او په آخر کښې د هندوانو په فوځونو کښې ورننوتل . او په خپلو پیش قوزو ئے دوی ځیری کړل " او د پښتنو د شجاعت په حقله دا موړخ داسے وائی " پښتانهٔ (د هندوانو د پاره) داجل پیغام وو . دوی به د برق په څیر په ځنګلونو ورننواتهٔ . او د هوسیو په شان به په غرونو ورغاتهٔ او د سیلاب په ډول به د غرونو نه راښکته کیدهٔ او د برے په څیر به ئے دشمنان سوری کول . او داوږ و امزرو په شان به په دشمنانو وربریوتل . او د دوی سترګو به د دشمن تریخ او به کاوهٔ "

هر کله چه د « بلخ او ناردین » په معرکو کښې پښتانهٔ په محمودی فوځونو کښې شامل وو . نو موږ دا اندازه لګولے شو . چه د سلطان په ټولو حملو کښې به پښتانهٔ د هغهٔ د فوځونو یوه لویه حصه وه . د دے قیاس مرسته د پښتنو د خپلو مؤرخینو د بیکونو نه هم کیږی .

دوئ وائی چه د محمود په هره حمله کښې پښتانهٔ د هغه د فوځونو په ډول شامل وو. بالخصوص د سومنات په معرکه کښې خو د پښتنو د باقاعده فوځونو نه علاوه ډیر پښتانهٔ د غازیانو په ډول د جهاد په غرض د خپلو خپلو مشرانو (لکه ملک عارف ، ملک داؤد ، ملک محمود ، ملک یحیٰی ، ملک غازی ، ملک شاهو ، ملک خانو ، ملک مامو او ملک احمد) په ماتحتی کښې شامل شوے وو . دا معرکه د تکالیفو په لحاظ د خپل نوعیت یوه بے مثاله معرکه وه . او په دے معرکو کښې د ترکو په نسبت پښتنو زیاته ځوانمردی ښکاره کړی وه لکه چه د یو پښتون د دے شعرونو نه څرګندهٔ ده . داسړے په اکثرو احتمالاتو پخپله هم په دے معرکه کښې شامل وو . ـــه

ترکو نامردو داسے اودانګل له نام و ننګه
زهٔ یو پښتون ووم چه ولاړ ووم د سلطان ترڅنګه
توره په لاس کښې په سرهٔ اوردعرصات اوختم
له بت شکن سره په دژ د سومنات او ختم

داخبره هم د فکر وړ ده چه د محمود په زمانه کښې اسلام په ډیرے تندئ او تیزئ په پښتنو کښې خور شو. اګرچه ډیرو پښتنو د صفاریانو په دوره کښې اسلام قبول کړے وو۔ ولے په دے کښې شک نشته چه د محمود په زمانه کښې په مجموعي طورسره اسلام قبول کړے دے۔ هم په دغه زمانه کښې پښتانهٔ د سلطنت په معاملاتو کښې یواهم عنصر په حیثیت او پیژندلے شول ۔ د محمود د سلطنت مرکز (غزنه) د پښتنو په علاقه کښې واقع وو۔ د مرکز دے نزدوکت به په پښتنوکښے داسلام په مقبول کیدو کښې لویه برخه لرله ۔ دا هم قرین قیاس ده چه محمود په خپله یو ځوانمرد او توریالے بادشاه وو. او دځوانانو په قدر هم پوهیدلو۔ محمود چه دهند دحملو د پاره دجهاد کومه طریقه اختیارکړی وه.۔ هغه د پښتنو د مسلمانیدٔ نه پس د دوی د طبیعت او فطرت سره هم آهنګه وه ۔ یعنی.په دے طریقه دوی ته د دین او د نیا دواړه فائدٔے اوخوشحالئ حاصلیدلے ۔ غرض د محمود او پښتنو دواړو د ارادو او خواهشاتو تکمیل د یو بل سره په نزدیکت او تعاون کښې کیدے شو ۔ او د دے په نتیجه کښې به پښتانهٔ نهٔ صرف په ډیر شمیر کښې په اسلام کښې داخل شوی وی ۔ بلکه د محمود د فوځونو د یو اهم عنصر حیثیت به ئے هم موندلے وی ۔

د خپلے تخت نشینئ سره سم د محمود پیش نظر مقصد دګند هارا نه د هندوشاهانو د سلطنت ساقط کول وو ۔ «جے پال » لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د سبکتګین په وخت کښې د دربار غزنی خراج منلے وو ۔ لیکن د سبکتګین په وفات د محمود او د هغهٔ د میرنی ورور اسماعیل د کورنئ مخالفت په وجه بیا ډیر زړور شوے وو ۔ او د خراج دادا کولو نه ئے عملاً انکار کړے وو۔

چنانچه محمود په کال ۱۰۰۱ کښې دجے پال د مقابلے په غرض د نځلس زره فوځ سره چه په غلجي او لودی پښتنو مشتمل وو ۔ د غزنی نه راووتلو ۔جے پال هم د حالاتو مطابق ښه تیاری کړی وه۔ دجے پال او محمود د دے جنګ مقام هم معلوم نهٔ دے ۔ ممکنه ده چه داجنګ دصبرو داو پیښور ترمینځه غالباً په هغه ځائے شوے وی ۔ کوم ځائے چه اوس د پیښور ښوتي اباده ده ۔ داځل هم جے پال شکست اوموند او خپله سره د پنځو سوځامنو نمسو وغیره دمحمود په لاس کښې بند یوان شو ۔ آخر صلح اوشوه جے پال وعده اوکړه چه پنځو یشت زره اشرفئ او پنځوس هاتیان به دخراج په ډول سلطان غزنوی ته ورکوی ۔ اوخپله یو ځوئے اونسے ئے دیرغمال په ډول دسلطان سره پریښودل ۔ په دے حمله کښې «ویهند» (هنډ) چه دکابل دشاهانو دسلطنت سابق مرکز وو ۔ دمحمود د لاسه اولوټے شو ۔جے پال چه خپل مرکز ته اورسید نو دے پرله پسے شکستونو هغه دومره غمژن کړے وو چه ددے

شکستونو دا ذلت ئے نور برداشت نکړے شو۔ او خپل ځان ئے په خپله په اور کښے اوسوزولو۔ او دغه شان ئے د شکست د بد نامئ داغونه دخپلے لمنے نه لرے کړل۔

د جے پال نه پس د هغهٔ ځوئے انند پال حکمران شو۔ او څه موده ئے دربار غزنی ته خراج لیږلو۔ په دغه ورځوکښے په ملتان کښے د شیخ حمید لودی نمسے ابوالفتح داؤدبن نصر حکمران وو۔ چه د ملاحده فرقے عقیدو ته مائل وو۔ او ددے نه علاوه به انند پال هم د محمود غزنوی په مخالفت پارولو۔ نو سلطان په ملتان هم حمله اوکړه۔ ابوالفتح داؤد ئے گرفتار کړو۔ او هغه د سلطان په قید کښے مړ شو۔

په کال ۱۰۰۸ کښے د سلطان محمود او انند پال ترمینځه یو سخت جنګ اوشو۔ (دجنګ (د معرکه تراوړی نه سیوا) په هغه ټولو جنګونو کښے زیات مشهور دے کوم چه د هندوانو او مسلمانانو ترمینځه شوی وو۔ ددے جنګ ابتدا هم انند پال کړی وه۔ د انند پال په مرسته کښے د هندوستان د راجګانو (لکه د دهلی، قنوج او ګوالیار وغیره) فوځونه هم راغلی وو۔ داجنګ هندوانو یو قومی جنګ ګڼلے وو۔ او دومره په جوش او خروش ئے ددے د پاره تیاریانے کړی وے چه ښځو پکښے دچندے په ډول خپل کالی او زیورات هم ورکړی وو۔ په دے جنګ کښے کهوکهران هم دانند پال په مرسته ولاړ وو۔ هندوانو ددے جنګ دګټلو دپاره د هغه ټولو ذریعو نه کار اخستے وو۔ کوم چه د کامیابئ د پاره ضروری ګڼلے شی۔ ددے جنګ مقام هم معلوم نهٔ دے۔ د تاریخ یمینی ص ۳۳۴ مطابق ددے جنګ میدان "شطالو یهند" دے۔ "ویهند" لکه چه معلومه ده د هندو شاهانو د سلطنت مرکز وو۔ او عین د اباسیند په غاړه هم آباد دے۔ نو داسے معلومیږی چه دا جنګ به د "هنډ" په خوا وشاکښے او په اکثر احتمالاتو دجلبئ جلسئ په میره کښے شوی وی او یا به داټک نه ښکته د "مانسره" سره په یو میدان کښے۔

په دے جنګ کښے د هندوانو د فوځ شمېر دومره زیات وو چه سلطان محمود په دوی د سمدستی حملے واره اونهٔ لیدله۔ ترڅلویښتو ورځو پورے دواړه فوځونه یو بل نه مخامخ پراتهٔ وو۔ دانند پال فوځونه په شمېره ورځ زیاتیدل۔ محمود غزنوی دخپل کیمپ نه ګیرچاپېره خندق کنستلے وو۔ اخر د جنګ ابتداء سلطان اوکړه۔ د زرو زرو سپاهیانو یوه یوه ډله به ئے لیږله۔ او هغوی به د هندوانو په فوځ غشی ورول او په دے د سټور به ئے د هندوانو فوځ رانږدے کولو۔ ولے د هندوانو په فوځ کښے دجنګ دومره جوش وو چه دیرش زره کهوکهرانو پښے ابلے پښے سرتورسر په یو ایړ په محمودی کیمپ چپاو اوکړو۔ او دومره زوروئ

حمله ئې اوکړه ـ چه د ډېر ځلور زره مسلمانان ئې په یو وار اووژل ـ انند پال په خپله هم په دې حمله کښې د کهوکهرانو سره شامل وو ـ د محمود فوځونو د کهوکرانو د احمله په ډېر ګړاؤ او تمبولو ـ جنګ د سحر نه تر ماښامه جاري وو ـ د غه وخت د انند پال هاتی په یوغشی اوګکید ـ او تختۍ مخه اوکړه ـ په دې وجه د هندوانو په فوځونو کښې هم پریشانی خوره شوه. مسلمانانو د دې موقع نه فائده واخسته او په یو ایړ ئې په هندوانو حمله اوکړه ـ او د دې په نتیجه کښې د هندو فوځ پښې اوښوئېدلې ـ تیښته ئې اختیار کړه ـ په دې موقع ډېرو هندوانو اسلام قبول کړو ـ او د محمود په فوځونو کښې شامل شول ـ احتمال لري چه دغه خلق به هم د هند د خواوشا د علاقې غیرمسلم پښتانه وو ـ او تر دې وخته به لا مسلمانان نه وو. او په دې موقع به ئې د قتل نه د بچ کیدو په غرض اسلام قبول کړې او محمود په فوځونو کښې شامل شوی وی ـ د انند پال په دې شکست د ګند هارا (وادئ پښبور) ټوله علاقه د برهمن شاهانو د حکومت نه اوشلیدله ـ او د غزنی په سلطنت کښې شامله شوه.

د انند پال نه پس د هندو شاهانو د سلسلې بل بادشاه ترلوکن پال دې چه "البیروني" هم ذکر کړې دې ـ د سلطان محمود سره "ننه نه" په مقام د ې هم جنګیدلې او شکست ئې موندلې دې ـ د دې سلسلې آخري باچا بهیم پال دې ـ چه په ۱۰۲۶ء کښې اووژلې شو ـ او د غه شان د د ه په مرګ د هندو شاهانو اوږده سلسله ختمه شوه ـ د غه وخت د سرهند پورې علاقه د غزني په سلطنت کښې شامله وه ـ

## د فارسي ژبې رواج :-

د سلطان محمود تر زمانې پورې د اسلامي حکومتونو دفتري ژبه عربي وه ـ اګرچه د غزنویانو نه وړاندې "صفاریان او سامانیان" نسلاً ایرانیان او قدرتاً ایراني تهذیب ته مائل وو ـ او یعقوب لیث په خپل وخت کښې د عربي ژبې حوصله افزائي هم نه کوله ـ لیکن د دې خاندانونو اقتدار د محمود په مقابله کښې ډېر کم وو ـ او په دې وجه د خلافت بغداد د اثر په نتیجه کښې د دوئ د حکومتونو ژبه عربي وه ـ په دې وخت کښې ترکي ژبې دومره صلاحیت نه وو پیدا کړې ـ چه د عربي ځائې ئې نیولې وې ـ د اخبره هم وه چه ترکان جنګي خلق وو ـ او د ژبې د معاملاتو سره ئې څه مینه نه لرله ـ ولې ایرانیان چه د ایشیا په ټولو قامونو کښې چالاک، هوښیار او موقع شناس وو ـ د علم په میدان کښې د پښتنو او ترکانو دواړو قامونو نه وړاندې وو ـ او عموماً په شاهي دفترونو کښې ئې لوې لاس لرلو ـ د مسلمانانو نه اول د ساسانیانو په زمانه کښې فارسي ژبه تقریبًا د نیمې ایشیا ژبه وه. د سلطان محمود تر زمانې پورې اګرچه ایرانیانو او خراسانیانو عربي ژبه زده کوله ـ او لوئې

لوئے عالمان ئے په دے ژبه کښے پیدا کړی وو. لیکن بیا هم د هر ایرانی او خراسانی دپاره د عربۍ ژبے زده کول او په هغے کښے مهارت حاصلول آسان نهٔ وو. او د عربو مقابله د دوی د پاره گرانه وه. له دے کبله د ایرانیانو دا خواهش وو چه د عربۍ په ځائے دفتری ژبه فارسی شی د سلطان محمود په دربار کښے اکثر عالمان فاضلان ایرانیان او خراسانیان وو. او د هغوی اکثر تصانیف به په فارسۍ ژبه کښے وو. سلطان محمود په خپله هم د فارسۍ ژبے قدردان او نکته دان وو. دغه وجوهات وو چه دایرانیانو حوصلے ئے زیاتے کړے وے.

د سلطان محمود د وړومبی وزیر ابوالعباس بن احمد اسفرائنۍ وو. نوموړے په ملکی انتظام کښے خو ښهٔ ماهر وو. ولے د عربۍ ژبے لوئے عالم نهٔ وو. نو دهٔ د سلطان احکام د عربۍ ژبے په ځائے په فارسۍ کښے لیکل شروع کړل. په دے توګه شاهی او دفتری ژبه فارسی شوه. ابوالعباس لس کاله وزیر وو. د دهٔ د وزارت په دوران کښے ترکانو او پښتنو د فارسۍ ژبے څه مخالفت اونهٔ کړو. د دے نتیجه دا شوه چه د عربۍ ژبے اهمیت کم شو. د ابوالعباس د معزولۍ نه پس خواجه احمد بن حسن میمندی د سلطان وزیر شو. دا سړے د سلطان هم سبق او رضاعی ورور هم وو. خواجه احمد د عربۍ ژبے لوئے عالم وو. د دهٔ په وخت کښے دفتری ژبه بیا عربی شوه. د دے اصل وجه نهٔ معلومیږی چه آیا د دے حکم سلطان کړے وو. او که خواجه احمد د معزول وزیر د کم لیاقتۍ او د خپل لیاقت د اظهار دپاره دا طریقه اختیار کړی وه. دا دواړه سړی نسلاً ایرانیان وو. او د فارسۍ ژبے د ترقۍ خواهش مند وو. اگرچه عربی بیا دفتری ژبه شوه. ولے اکثر انتظامی حاکمان نسلاً ایرانیان وو. او تصانیف به اکثر په فارسۍ کښے کیدل. د دے وجهے نه د فارسۍ ژبے جرړے مضبوطے شوے. او د سلطان محمود نه پس فارسی بیا دفتری ژبه شوه. دا روایت هم مشهور دے چه د خواجه احمد حسن میمندی د وزارت په زمانه کښے د پښتنو دا موجوده رسم الخط قاضی سیف الله نومے یو پښتون عالم ایجاد کړے دے.

محمود د ایرانی تهذیب نه ډیر متأثر وو. د هغهٔ په زمانه کښے ایرانی ادب بیا د نوی سر نه ترقی اوکړه. د هغهٔ په دربار کښے څلور سوه شاعران موجود وو. چه مشر ئے عنصری وو. په دے شاعرانو کښے فردوسی هم وو. چه د دنیا په لویو لویو شاعرانو کښے حسابیږی او د ایران قومی تاریخ ئے په نظم کښے د شاهنامے په نوم تصنیف کړے دے. د شاعرۍ نه علاوه نور علوم و فنون هم د محمود د سرپرستۍ نه محرومه نهٔ وو. مشهور فاضل او ریاضی دان «ابو ریحان البیرونی» چه په خپل کتاب «الهند» کښے د هندوانو د فلسفے او معاشرت په حقله قابل قدر

خیالات ظاهر کړی دی. د هغهٔ دوست او خه موده د هغهٔ په دربار کښې پاتې شوے وو. د غزنی په ښائست او ښکلا کښې چه د محمود پایه تخت وو. هغهٔ د ډیر زیار نه کار اخستے وو. دا ښار په دے زمانه کښې د خپلو شاندارو عمارتونو او تروتازه باغونو په وجه په "عروس البلاد" مشهور وو. د ده څنے عمارتونه ډیر مشهور دی. لکه د "بلخ بازار" او "دآمو سیند پول" د "غزنی بند" چه د دے ښار داوچو زمکو د اوبولو د پاره جوړ شوے وو. د غزنی ښائسته عمارتونه او باغونه د دے سلطان مهم کارونه ګڼل کیږی. ولے دا ډیره د افسوس خبره ده چه دا ټولے ودانۍ د غوری سلطان علاوالدین جهان سوز د لاسه په کنډوالو کښې بدلے شوے. دا لوئے بادشاه په سنه ۱۰۳۰ء کښې وفات شو.

**د سلطان محمود غزنوی جانشین:-** د منهاج السراج د وینا مطابق د سلطان محمود اووهٔ ځامن وو. محمد، مسعود، ابراهیم، اسماعیل، عبدالرشید، نصر او محمود. په دوی کښې محمد او مسعود مشران دواړه په یو ورځ پیدا شوی وو. د پلار د وفات نه پس محمد تخت نشین شو. ولے مسعود د هغهٔ تخت نشینی او نهٔ منله. د دواړو رورنو تر مینځه جنګ اوشو. چه په هغے کښې مسعود کامیاب او محمد د هغهٔ په لاس کښې ګرفتار شو. او بیا د مسعود په حکم ړوند کړے شو. مسعود په تخت قبضه اوکړه. لیکن په دے کورنی مخالفت په امیرانو کښې هم مخالفت پیدا شو. په دے ورځو کښې سلجوقی ترکانو چه د سلطان محمود د زمانے نه په خراسان کښې مخ په ترقۍ روان وو. ډیر زور پیدا کړے وو. دے خلقو به په ټول ملک کښې ډاکے کولے او د ښهری خلقو ژوندئے په دار کړے وو. ولے مسعود په ابتدا کښې د دوی بیخ کنۍ ته توجه اونکړه. آخر په هغه ورځو کښې چه مسعود هندوستان ته راغلے وو. سلجوقیانو په خراسان او ماوراءالنهر کښې ناتار جوړ کړے وو. د غه وخت مسعود د دوی په لور توجه اوکړه. او د دوی مقابلے ته راغے. ولے په مختلفو مقاماتو ئے د دوی نه داسے بد بد شکستونه اوموندل چه د خپلے خزانے سره د هندوستان په لور د غزنی نه راووتلو. غرض ئے دا وو چه په لاهور کښې به نوی فوځونه مرتب کړی. او د سلجوقیانو مقابلے ته ځان تیار کړی. ولے چه د مارګلے درے ته راورسید نو فوځ ئے بغاوت اوکړو، خزانه ئے لوټ کړه، مسعود ئے ګرفتار کړو. او د هغهٔ مشر ورور محمد چه د مسعود د لاسه ړوند او قید وو. د قید نه راخلاص کړو. او د مسعود په ځائے ئے تخت نشین کړو. آخر هم په دغه اړی کړی کښې مسعود د (۴۵) کالو په عمر کښې د دے کاله حکومت کولو نه پس اووژلے شو.

د مسعود په مرګ د سلطان محمود په اولاد کښې کورنی جنګونه شروع شول. د دے

کورنی مخالفت په وجه د ترکي اميرانو او غلامانو په اقتدار کښې زياتے راغلو. او د دوئ د لاسه د غزني تخت هم هغه حالت ته اورسيد کوم حالت ته چه د دوی د لاسه د بغداد د خلافت رسيدلے وو. په دے ورځو کښې د سلجوقي ترکانو طاقت هم دومره زيات وو چه د غزني تخت د هغوی په رحم وکرم موقوف وو. په دے دول د غزني په تخت څو بادشاهان تخت نشين او وژلے شول. تر دے چه نوبت بهرام شاه ته را اورسيد. بهرام د ابراهيم ځوئے او د مسعود نمسے وو. بهرام يو عالم فاضل او د عالمانو فاضلانو قدردان وو. د ده زمانه د علمي ترقۍ د پاره مشهوره ده. ليکن د سلطان سنجر په امداد د بادشاه کيدو په وجه د غزني سلطنت عزت او وقار د خلقو د زړونو نه پاسيدلے وو. سلجوقيانو په خپله خو د غزني سلطنت نه څه تهوتے نهٔ وے بيلے کړے. ليکن د بهرام عزت د خلقو په نظر کښې د سلجوقيانو د امداد په وجه کم شوے وو. آخرهم د بهرام شاه په وخت د غور اميرانو چه د سلطان محمود غزنوی د وخت نه دربار غزني باجګذار وو. غزنے فتح کړو. او د محمود د خاندان خاتمه اوشوه. د دے واقعاتو تفصيل به د غوري تېر په ذکر کښې اوشي.

# دغور شاهي کورنۍ

**غور:-** دغور نه مراد هغه غرځېزه علاقه ده چه د هندوکش د قبلې خوا ته زغېږي نه جوړه ده - دا علاقه د هرات، فراه، قندهار او اوسنی هزاره جات په مینځ کښې واقع ده. ټوله علاقه غرنېزه او د دے اثر په خلقو ښکاره دے. د پښتنو د خپلو مؤرخینو مطابق دا علاقه د پښتنو اصلي مرکز ګڼلې شي - د دے علاقې خلق د خپلې علاقې د محل وقوع او طبعي ساخت په وجه همیشه د خپلې آزادۍ په حفاظت کښې کامیاب وو. ولے د سلطان محمود غزنوي په زمانه کښې دے علاقې د دربار غزنی د یو باجګذار ریاست حیثیت اوموندلو. په دغه وخت کښې د دے علاقې حکمران امیر محمد سوري نومیده -

په پخوانۍ زمانه کښې د غور په علاقه کښې څلور تپې خلق وو - چه د «سوري»، «تاګني»، «جمشیدي»، او «فیروزکوهي» په نومونو مشهور وو. د غور شاهي ټبر د «سوري» تپې سره تعلق لرلو. د «سوري» تپه په اکثرو احتمالاتو د عرب مؤرخینو، خوا د «زوري» په لفظ هم ضبط شوي ده. داکټر لیکوالو په خیال کښې د دے علاقې خلق او شاهي ټبر نسلاً پښتانه او د دوی ژبه پښتو وه. لیکن د اوسنۍ زمانې یو فاضل لیکوال سناغلے کیرو «په خپل کتاب «دی پټهان» کښې د دے خیال اظهار کوي چه د غور شاهي ټبر او عام اولس پښتانه نه وو. په دے ضمن کښې دا ښاغلے داسے وائي :-

پخواني مؤرخین چه پښتو ژبه نه پوهیدل. لغوي د لفظ «غور» او پښتو ژبے «غر» ترمینځه د مشابهت په وجه په غلط فهمۍ کښې غور زېدلی دي. او ځکه ئے په غلط ډول د دے علاقې خلق «غرڅېز» یعني د غرونو اوسیدونکي (پښتانه) ګڼلی دي - وړاندے دا ښاغلے وائي چه غور د هغه علاقې نوم دے چه اوس ورته هزاره جات ویلے شي - او د چنګیزخان د اولاد د وخت نه په کښې هزاره قام چه نسلاً مغل دي اباد دي - ولے په دولسمه صدۍ میلادي کښې په دے علاقه کښې د مشرقي ایراني نسل خلق آباد وو - چه پښتنو او ترکو به ورله تاجک ویل. سره د دے موږ دا امکان د خیال نه نه شو ایستلے چه د غور د شاهي کورنۍ په وینه کښې به څه ترکي اثرات نه

وی شامل شوی۔ اګرکه دوی خالص ترک نهٔ دی ځکه چه هغه ټول خاندانونه چه د سامانی خاندان په زوال پیدا شوی وو۔ خوا که سلجوقیان وو که غزنویان او که قره خانی ټول نسلاً ترک وو۔ په داسې حالاتوکښې به د غور شاهی ټبر د پاره دا خبره ګرانه وه۔ چه هغوی خپله ایرانی وینه خالصه او بې آمیزشه او ساتلې شی۔ وړاندې دا ښاغلې وائی چه دا هم ډیره عجیبه ده۔ چه د غور د اشنبسی سرداران هم د هغه کورنۍ سره تعلق لری چه د پښتنو شجره نویسو له خوا "افسانوی حسین" (چه د "بی بی متو" خاوند او د غلجی او لودی پښتنو فرضی مورث اعلیٰ دے) هم د هغې سره مربوط دے۔ او دا خبره هم یاده ساتل پکار دی چه د دے کورنۍ (لودیانو) په حقله دا نسبت هغه وخت د هغه خلقو له خوا ورکړے شوے دے د کوم وخت نه چه دے کورنۍ په هندوستان کښې سلطنت قائم کړے دے۔ او د دے لیکوالو دا خیال تاریخونه هم په هندوستان کښې لیکلی دی۔

د غور د شاهی ټبر او عام اولس په حقله چه ښاغلی کیرو څه لیکلی دی۔ د هغې خلاصه مطلب به داسې بیان کړو۔ چه د ده په خیال کښې :-

(۱) غور شاهی ټبر او عام اولس پښتانهٔ نهٔ وو۔ او

(۲) ځوانو پښتنو لیکوالو دا خلق د "غور او غر" د مشابهت په وجه په غلط ډول پښتانهٔ ګڼلی دی۔

(۳) دا خلق نسلاً ایرانیان وو۔ ولې د دوی په وینه کښې به ترکی اثرات ګډ شوی وی۔

(۴) دے خلقو ته به ترکو او پښتنو تاجک وئیل۔

ترڅو مره چه د ښاغلی کیرو د دے پورته قیاساتو تعلق دے۔ زما په خیال کښې دا درست نهٔ معلومیږی۔ د پښتنو ځوانو لیکوالو د غور خلق د غور او غر د مشابهت په وجه پښتانهٔ نهٔ دی ګڼلی - بلکه د دے وجه دا وه چه د مقامی روایاتو په بنا د لفظ پښتون وجه تسمیه دا منلی شوی ده چه په فارسی ژبه کښې اوچتے زمکے او غرے ته پشته وائی - او دا خلق (پښتانهٔ) چونکه د غرئیزے علاقے استوګن وو نو په دے وجه به فارسی والو دوی ته "پشتوان" وئیل۔ د هغه لفظ "پشتوان" وروستو د پښتو ژبے د قاعدے مطابق پښتون او د جمع په شکل کښې پښتانهٔ شو۔ دا قیاس ځکه د منلو دے چه آرمینیانو به هم دا خلق د "اوغان" (یعنی د غرئیزے علاقے استوګن) په لفظ یادول او دا لفظ وروستو په افغان کښې بدل شو۔

دا خبره چه ترکو او پښتنو به دے خلقو ته تاجک وئیل هم درسته نهٔ معلومیږی۔ اصل خبره دا ده چه اسلامی مؤرخینو د "تاجک" لفظ د هغه خلقو د پاره استعمال کړے دے۔ چه هغوی

نسلاً عرب وو. ولې په ایران او خراسان کښې استوګن شوي وو. او په دې مدګونو کښې ئې ودونه کړي او د دې خلقو یو جزو ګرځېدلي وو. دا قسم خلق به عموماً تاجرپیشه او سوداګران وو. او د "تاجک" نه په وسیع معنیٰ کښې مراد سوداګر هم وو. د فارسۍ ژبې په ټولو لغاتو کښې د تاجک یو معنیٰ سوداګر هم لیکلی شوې ده. ولې د ځینې عالمانو په خیال کښې د تاجک نه مراد هغه خلق دي کوم چه هیرودوټس د "دادیکې" په لفظ یاد کړي دي. دغه لفظ "دادیکي" د ژند په ژبه کښې "داکیو" ضبط دې. او د دې نه مراد هغه خلق وو چاچه به د زراعت او کرکیلې کار کولو. دغه لفظ وروستو په "دهګان" او بیا په عربۍ کښې په دهقان بدل شو.

به هر حال که د غور شاهي ټبر او عام اولس د ښاغلي کیرو مطابق "تاجک" هم وو. ولې نسلاً ایرانیان او د ترکانو نه سوونه کاله وړاندې هم په دې خپله علاقه کښې استوګن وو. پاتې شوې وو دوي په وینه کښې د ترکي نسل اختلاط او آمیزش نو دا امکان هو یوائځې د دې خلقو په باب کښې نه بلکه د ټولو قامونو په باب کښې متصور کیدې شي. هرکله چه د دوي ګیرچاپېره ترک قبائیل آباد وو. او په مختلفو طریقوځې د یو بل سره تعلق لرلو نو ممکنه ده چه د دوي نسلونه او وینې به د یو بل نه متاثره شوي وي. دا هم معلومه ده چه شاه حسین د شنسبي خاندان د یوې څانګې یو غړې وو. او په دې لحاظ د غور د شاهي ټبر هم نسل او هم قبیله وو. البته د شاه حسین او بي بي متو د وادهٔ افسانه ځان له یو جدا سوال دې. پاتې شوه دا خبره چه د غور شاهي ټبر او د دې علاقې عام اولس ښپتانهٔ ووکهٔ تاجک؟ نو زما په خیال کښې دا فاق پښتانهٔ وو. او د دوي مورنۍ ژبه پښتو وه. او د غور د شاهي ټبر زمانه د پښتو ژبې د ترقۍ یوه ځلانده دوره وه. چه د راتلونکي تفصیل نه به دا ثابته شي.

په اسلامي دوره کښې د غور د شاهي ټبر وړومبې سردار شنسب نومیدهٔ چه د دهٔ په نوم د غور شاهي کورنۍ ته شنسبي یا شنسباني هم وئیلې شي. د منهاج السراج (چه د غوري خاندان پرورده او د دې عصر یو قابل اعتبار مورخ دې) د وینا مطابق شنسب د امیرالمؤمنین حضرت علی رض خلورم خلیفه په خدمت کښې د کوفې په مقام حاضر شوې او اسلام ئې راوړې وو. او د خلیفه د لوري نه ورله د غور د امارت فرمان ورکړې شوې وو د حضرت علی رض د خلافت زمانه د سنه ۳۵ھ نه تر سنه ۴۰ھ پورې وه نو موږ دا قیاس کولې شو چه د اولې هجري صدۍ په اوله نیمه کښې شنسب د غور حکمران وو. او د دې وخت نه د غور کورنۍ د اسلام سره متعارفه شوې وه. لیکن د غور د علاقې عام اولس لا مسلمانان نهٔ وو.

د بده مرغه نه خو د شنسب په باب کښې تورڅه معلومات موجود دي چه دے ترکومه حکمران وو ـ او نهٔ دا معلومه ده چه د دهٔ نه پس د غور حکمران څوک شو؟ البته د ابومسلم خراساني د تحریک په دوران کښې د غور د کورنۍ حالات بیا څه لږ ډیر معلومیږي ـ په دغه وخت کښې د پټے خزانے د روایت مطابق د غور حکمران امیر پولاد سوري وو ـ او دهٔ هم د ابومسلم په دے تحریک کښې لویه برخه اخستې وه ـ نو موږ دا قیاس کولے شو ـ چه د دویمے صدۍ هجرۍ په اولنی کالونو کښې به د غور امارت امیر پولاد ته رسیدلے وي ـ د امیر پولاد نه پس د هغهٔ ځوی امیر کروړ په سنه ۱۳۹ھ کښې د غور حکمران شو ـ امیر کروړ هم د ابومسلم د تحریک یو لوٹے مرستیال وو ـ او د دے تحریک په پرمخ تګ او ترقۍ کښې ئے لویه حصه اخستې وه ـ د امیر کروړ او امیر پولاد دواړو حالات په ،، پټه خزانه ،، کښې موجود دي ـ او زهٔ دلته د دوی حالات د پټے خزانے نه هم په هغه الفاظو کښې لیکم ـ د امیر کروړ په حقله د پټے خزانے دا شهادت ډیر اهم دے او د دے نه به د غور د شاهي کورنۍ د ژبے په باب کښې زموږ پوره پوره رهنمائي اوشي ـ

،، ذکر د جهان پهلوان امیر کروړ ځوئے د امیر پولاد سوري ، غوري ،، نقل کا زبدة الواصلین شیخ کته غوریاخیل په خپل کتاب ،، لرغوني پښتانهٔ ،، کښې چه دے نقل کاله تاریخ سوري چه په بالشتان[۱] کښې ئے کتلے او موندلے وو ـ شیخ کته‌ هے وائي چه په تاریخ سوري کښې ئے راوړي دي چه امیر کروړ د امیر پولا د سوري ځوئے وو ـ چه په کال سنه ۱۳۹ھ کښې د غور په مندیش[۲] کښې امیر سو (شو) او جهان پهلوان ئے بالهٔ ـ

وائي چه د غور کوتهونه او د بالشتان او د خیسار[۳] او تمران[۴] او برکوشک ئے تول اونیول[۵] ـ او د ریاست له کهوله[۶] ئے په خلافت کښې ډیر کومکونه اوکړل ـ په تاریخ سوري کښې نسبے وائي چه دا امیران د پیړیو (نه) په غور او بالشتان او بست کښې وو ـ او د هغه سوري نومے له اولادے دي ـ چه د ،، سهاک ،، له پښته وو ـ امیر پولاد په هغه دعوت کښې شریک وو

(۱) د غور په علاقه کښې یو مقام وو ـ

(۲) مندیش د غور په علاقه کښې یوه ښځوانۍ مضبوطه قلا وه ـ

(۳) د غور په علاقه کښې د قطب قبلے په لور یو مضبوطه سرحدي قلا وه ـ

(۴) د غور په اطرافو کښې یو مشهور مقام وو ـ

(۵) د فیروز کوه په غار کښې یو مشهور محل وو ـ

(۶) خاندان ، ټبر ـ

چه ابو العباس سفاح د بنی امیه سره جګړه کوله - او ابو مسلم ئے هم مرستے ورو. په تاریخ سوری د محمد بن علی البستی کښے داسے کښلی دی چه د عباسی دعوت په جنګو (نو) کښے چه امیر کروړ ډیرے سوبے اوکړے. نو دا بیتونه ئے اوویل چه ویاړنه ئے بولی. او هغه دا دی چه شیخ کټه له تاریخ سوری نه نقل کړی دی.

## «ویاړنه د امیر کروړ جهان پهلوان»

زهٔ یم زمرے پردی نړئ له ما اتل نسته	په هند و سند و پر تخار او په کابل نسته
بل په زابل نسته	له ما اتل نسته
غشے دمن ے ځئ بریښنا په میر منو باندے	په زوبله پونم پر غالم پر تښتید لو باندے
په ماتیدونو باندے	له ما اتل نسته
زما د بریو په خول تاویږی هسک په مینځ و په یاړ	داس له سووے غرونه ریږدی غرونه کاندم لتاړ
کرم ایوادونه ویجاړ	له ما اتل نسته
زما د تورے د شپول لاندے دی هرات وجروم	غرج و بامین و تخار بولی نوم زما په اودوم
زهٔ پیژندوی یم په روم	له ما اتل نسته
په مروزما عیسی لونی داری دښمن راځنه	دهریو رود پر څنډ وځم تښتی پلمن راځنه
رپی زړن راځنه	له ما اتل نسته
د زرنج سوبه ے د تورے په مخ سورا وکړه	په بادارئ ے لوارے د کول د سور اوکړه
ستړے تربور اوکړهٔ	له ما اتل نسته

---

(١) مرستیال .حامی - (٢) جمع فتوحات - (٣) فخریه - (٤) دنیا - (٥) پهلوان - (٦) اراده - (٧) خلق مراد تیز - (٨) دښمنان - (٩) جنګ جګړه - (١٠) یون کوم - ټک کووم - ځم - (١١) یرغل کووم - تاخت کوم - (١٢) تیښته کوونکی (١٣) تیښته کوونکی - (١٤) بریالی - فاتح - دلیر - (١٥) آسمان - (١٦) احترام - (١٧) مخز - (١٨) سمونه (١٩) اطراف - ملکونه - (٢٠ نه ٢٣ پورے) د علاقو او مقاماتو نومونه دی - (٢٥) علاج - (٢٦) متعارف - مشهور - (٢٧) د ښار نوم دے - (٢٨) د لونل مصدر نه لونی فعل حال پاشل - (٢٩) ویریږی - (٣٠) دشمن - (٣١) دیو سیند نامه - (٣٢) تښتی - (٣٣) پلن - پاده - (٣٤) دلاور - زړور - (٣٥) دیو مشهور مقام نامه ده - (٣٦) آبروئی - عزت - (٣٧) لوئے والے - (٣٨) عزت ے ورکړهٔ - د سوری ټبر د حکومت او اقتدار عزت ے زیات کړو.

خپلو وګړوله لره او پيرزوينه لـــــرم … د دی په داډينه ښنه باهم ښه ئې روزنه کوم
تل ئې وډبه کووم … له مااتل نستـه
په لويو غروے وينا دروي نه د ښنو په تال … نړۍ زما ده نوم ے بولی پر دريځ ستائيوال
په ورځو شپو مياشتو کال … له ما اتل نستـــه

شيخ کته د تاريخ سوری په سند دا هم ليکی چه امير کروړ عادل. ضابط او د ښې وينا خاوند وو- په کال ۱۵۴ھ کښے د بوشيخ په يو جنګ کښے مړ شو- او د دے نه پس د هغهٔ ځوی امير ناصر د امارت په ګدۍ کښيناست- او ايوادونه ئې ضبط کړل-

د پټے خزانے د دے شهادت نه ښکاره موښ. ته دا معلومه شوه چه د ابومسلم خراسانی د تحريک په زمانه کښے يعنې د ۱۳۱ھ په خوا وشا کښے د غور حکمران امير پولاد وو- او د امير پولاد اسلاف پيړۍ په پيړۍ د غور حکمران وو- په دے بنا موښ. دا وئيلے شو چه امير پولاد به د امير شنسب په اخلافو کښے وو- د امير پولاد نه پس امير کروړ د غور حکمران شو- دهٔ هم د ابومسلم په تحريک کښے لويه برخه اخستې وه- او څه رنګ چه د دهٔ د دے فخريه نظم نه څرګنده ده- امير کروړ يو ضابط او با اقتداره امير وو- امير کروړ چه کومه ويارنه د خپل شجاعت او شانداره کارنامو د اظهار په غرض وئيلی ده- هغه په زړے پښتو ژبه کښے ده- دا ژبه د عربۍ او فارسۍ د اثراتو نه بيخی پاکه ده- او په خپلو الفاظو او افعالو کښے بيخی خالصه او سوچه معلوميږی- دا ويارنه څه رنګ چه د پښتو ژبے په ادب کښے د اوليت په وجه لوړ مقام لری- دغه رنګ دا د پښتو د تاريخ د پاره هم ډير اهميت لری- د دے نه دا صفا معلوميږی چه د امير کروړ مورنۍ ژبه پښتو وه- او هرکله چه د امير کروړ مورنۍ ژبه پښتو وه نو د هغهٔ د پلار او د نورو اسلافو او اخلافو مورنۍ ژبه به هم پښتو وه- که چرے داسے نهٔ وے يعنې د غور عام اولس په پښتو نهٔ پوهيدلے يا کم ازکم هغه خلق چه د چا سره د امير کروړ تعلق وُو- د پښتو ژبے نه نابلده وے نو هغهٔ به خپل فخريه خيالات په پښتو کښے ولے ظاهرول- دا فظم لکه چه ظاهره ده- د امير کروړ د فتوحاتو او د هغهٔ د شجاعانه کارنامو نه د خپل اولس خبرول ووځکه د دے مقصد د حصول د پاره هغهٔ خپله مورنۍ ژبه پښتو اختيار کړی وه- او په دے غرض ئے کړی وه چه د هغهٔ خپله او د

(۱) مهربانی - فيض - (۲) داګيرنه - تسلی - (۳) اوس متروک دے- پالل - (۴) پالنه - (۵) وده - (۶) تاخير- (۷) ممبر- (۸) خطيب - واعظ - (۹) پټه خزانه ص۲۵ -

عوامو یعنی د غور د علاقے د عام اولس ژبه پښتو وه۔ پس د امیر کروړ دا نظم څه رنګ چه د پښتو ادب یو وړومبے شاهکار دے۔ د غه رنګ دا نظم د غور د خلقو او د غور د شاهی تېر دژبے په حقله هم یو تاریخي دستاویز دے۔ که چرے پټه خزانه پته پاتے وے نو د امیر کروړ دا نظم به هم پټ پاتے وو۔ او مونږ به په وثوق سره دا نۀ شو وئیلے چه د غور عام اولس او د دے علاقے شاهی ټبر پښتانۀ وو۔ او که نور څوک ؟ لیکن د امیر کروړ د دے نظم په موجودګئ کښے د دے خبرے نه انکار کول چه د غور اولس پښتانۀ نۀ وو۔ د واقعاتو او حقائقو نه به سترګے پټول اوګڼلے شي۔ دا خبره چه د غور اولس پښتانۀ او د دوی ژبه پښتو وه۔ د غوری ټبر د نورو بادشاهانو په ذکر کښے به نوره هم ښه واضحه شي۔

لکه چه پورته اووئیلے شول د پټے خزانے د روایت مطابق د امیر کروړ نه پس په ۱۵۴ھ کښے د دغۀ څوتے امیر ناصر حالات هم معلوم نۀ دي۔ او دا نۀ ده معلومه چه امیر ناصر څومره موده حکمران وو۔ او دده نه پس څوک حکمران شو۔ ولے د هارون الرشید په زمانۀ خلافت کښے د دے خاندان د حکمران نوم بیا اوریدلے شي۔ د غه وخت کښے د منهاج السراج مطابق "امیر بنجي نهاران" د غور امیر وو۔ چه د خلیفه د لوری نه ورله د غور د امارت سند ورکړے شوے وو۔

د دے خاندان بل حکمران امیر سوری نومیدۀ چه څنے شجره نویسو د "امیر بنجي نهاران" په نمسو کښے ظاهر کړے دے۔ امیر سوری د سفاری خاندان (۲۵۴-۲۹۶ھ) معاصر وو۔ د دهٔ په باب کښے منهاج السراج دا سے لیکی :-

د مندیش د شنسبیانو سرکرده امیر سوری وو۔ چه لوئے بادشاه وو۔ او د غور اکثر کوټونه دده په تصرف کښے وو[۱]۔

په کومو ورځو کښے چه په غزنی کښے امیر سبکتګین حکمران وو۔ د دے نه څه موده وړستو د غور امارت امیر محمد سوری ته رسیدلے وو۔ امیر محمد د سلطان محمود غزنوی هم معاصر او د هغۀ په لاس بندیوان شو۔ منهاج السراج د امیر محمد سوری ذکر دا سے کوی :-

په کومو ورځو کښے چه سلطان محمود غزنوی د غزنی په تخت جلوس اوکړهٔ۔ په دغه ورځو کښے د غور امارت محمد سوری ته رسیدلے وو۔ او د غور ملکونه ئے په قبضه کښے را وستلی وو۔ د عباسیانو د ضعف په وخت کښے د غور علاقه آزاده وه۔ صفاری حکومت

---

۱ه طبقات ص۱۸۱

هم د غور حکومت په خپل حکومت کښې شامل نه کړے شو. ساماني طاقت هم د دوی د ایل کولو د پاره بړاسه نام وو. دغه وخت کښې لا د غور په ټوله علاقه کښې اسلام نهٔ وو خور شوے. نو د غور د مسلمانانو او غیر مسلمو ترمینځه به جنګونه جاری وو. او اکثر فیصله به په توره کیدله. تردے چه محمد ابنِ سوری حکمران شو. او هغهٔ په ټولو مخالفینو غلبه حاصله کړی وه. سلطان سبکتګین هم په غور حمله کړی وه. ولے کامیاب شوے نهٔ وو. او په دے خبره د محمد بن سوری حوصله نوره هم زیاته شوی وه. د سلطان محمود په وخت کښې به امیر محمد سوری کله د هغهٔ تابع وو. او کله به ئے د هغهٔ نه سرکښی اختیار کړه. آخر سلطان محمود د غور د آخری فیصلے په غرض د یو لوئے لښکر سره د غور په لار روان شو. دغه وخت کښې امیر محمد سوری د آهنګران[۱] په قلا کښې وو. د غزنی فوځونه د قلا نه تاؤ شو ډیرے ورځے جنګونه اوشول. آخر صلح اوشوه. امیر محمد د قلا نه رابهر شو. او د سلطان په خدمت کښې حاضر شو. سلطان هغه او د هغهٔ یو ځوئے "شیش" غزنی ته اولیږل چه د کیلان خوا ته اورسیدل نو امیر محمد په حق اورسید. ځنې خلق دا روایت کوی چه هر کله هغه بندیوان شو نو د غیرت په وجهٔ د قید ذلت برداشت نهٔ کړے شو. زهر ئے اوخوړل او د دے نه مړ شو[۲].

د منهاج د دے بیان تصدیق د پټے خزانے نه هم کیږی. د پټے خزانے مطابق هم هر کله چه امیر محمد سوری د سلطان محمود په لاس کښې بندیوان شو. نو د قید د ذلت نه ئے مرګ غوره کړو. زهر ئے اوخوړل او مړ شو. "بیهقی" هم د محمود د دے لښکرکشئ حال لیکلے دے. ولے د غور د بادشاه نوم نهٔ اخلی. او دا سے وائی چه محمود غزنوی په (۴۰۵ھ) کښې په غور حمله اوکړه. "ابنِ اثیر" دا فوځ کشی په سنه ۴۰۱ھ کښې بیانوی. او د امیر محمد د زهر خوړلو واقعه هم لیکی. به هرحال دا خبره ثابته ده چه د محمود غزنوی د حملے په وخت (سنه ۴۰۱ھ) کښې د غور حکمران امیر محمد سوری وو. او چونکه سبکتګین هم په غور حمله کړی وه نو بنا په دے موږ دا وئیلے شو چه محمد ابن سوری به د غور امارت ته د سبکتګین د تخت نشینئ (سنه ۳۶۶ھ)

---

[۱] آهنګران د غور په ښارونو کښې مشهور ښار وو. او د سوری خاندان د حکومت مرکز وو. البیرونی د دے ځائے د محل وقوع تعین د غور د غزو نو ترمینځه کوی. آهنګران اوس هم په دے نامه مشهور او ښیے نښانے ئے د هری رود په پورتنۍ حصے کښې د "کاسی" جنوب ته د سیند په غاړه موجود دے دی. (پټه خزانه).

[۲] طبقات ص۱۸۲

نه پس رسیدلے وی۔

دامیر محمد ابن سوری په واقعاتو کښې زموږ د غرض چه کومه خبره ده هغه ددهٔ هغه مرثیه ده چه ددهٔ په مرګ د غور درباری شاعر اسعد سوړی[1] نومے یو پښتون شاعر په پښتو کښې وئیلې ده۔ او د پټې خزانے په واسطه موږ ته رارسیدلی ده۔ په دے مرثیه کښې (۱۴) شعرونه دی۔ د پښتو ژبے دا مرثیه د دے خبرے څرګند دلیل دے چه دامیر محمد سوری ژبه پښتو وه۔ او د محمود غزنوی په زمانه کښې یعنې د څلورمے صدۍ هجری په آخر کښې د غور د عام اولس او د شاهی ټبر ژبه هم پښتو وه۔ دا مرثیه د سوز و حسرت او دلی رنج و غم د جذباتو یو شاهکار دے۔ د دے دلی رنج و غم د پاره د شاعر خپله مورنۍ ژبه (پښتو) وسیله ګرځول په دے خبره دلالت کوی چه هغه په دے غم کښې د خپل ملک ټول اولس شریکول غواړی۔ د دے مرثیے یو څو شعرونه لاندے لیکلے شی:۔

## د اسعد سوړی مرثیه

د فلک له چارو څه اوکړم کوکار[2] زمولوی[3] هر ګل چه خاندی پربهار
په سوریو باندے ویر پریوت له پاسه محمد واکمن چه لاړ په بل دیار
په شماو[4] ورانے آهنګران وو په ټیکنه[5] وو پردرست جهان اوګار
د محمود د ژوبلو[6] رو په لاس کیښیوون چه غزنه ته بانے باتلے[7] په تلوار
ننګیالو لره قید مړینه[8] ده څکه شه وه والوتله هسک[10] ته په تلوار
ترنږ ې[11] غوره خاورے هدیره کا د زمریو په بیړیو کله وی[12] څوار
په دے ویر د غور وګړی تورنړ سول[13] په دے ویر رنا تیاره شوله د بنار

---

[1] شیخ کته غوریا خیل په خپل تاریخ لرغونی پښتانه کښې د تاریخ سوری حواله لیکی چه اسعد سوری په غور کښې اوسیدهٔ۔ او د ثوری خاندان په بادشاهۍ کښې ډیر عزت مند وو۔ د پلار نامه ئے "محمد" وه۔ په ۴۲۵ھ کښې په بغین کښې وفات شو۔ بغین د زمینداور په اطرافو کښې یو ښار وو۔ چه د غور او زمینداور ترمینځه اباد وو۔ او س ورته بغنی وائی۔ په حدود العالم کښې هم بغنی ذکر شوے دے۔

[2] فریاد۔ [3] مړاوے کوی۔ [4] انصاف۔ [5] عدل۔ انصاف۔ اصلاح۔ [6] څرګند۔ مشهور۔ [7] مراد سپاهیان جنګی ځوانان۔ ژوبلوونکی۔ [8] بوتلو۔ روان کړے وو۔ [9] مرګ۔ [10] سا۔ روح۔ [11] اسمان۔ [12] صبر۔ [13] سیاه پوش۔ غمجن۔

چه زمری غونډې واکمن ځی له جهانه | چه څوک نګړی په نړۍ باندے قرار
سخ(۱) په تا اے محمده دغور لمروے | په نړۍ به نه وی ستا دعدل(۲) سار
په جنت کښے دِ وه تون(۳) زموږ واکمنه | هم په تا دِ وی ډیر لوَر(۴) دغفار

دامیر محمد ثوری نه پس دغور د ثوری خاندان حالات دتیرو نه رڼا ته راوتلی دی. هرکله چه امیر محمد د سلطان محمود په لاس کښے ګرفتار شو او هغهٔ خودکشی اوکړه. نو دے نه پس دامیر محمد یو بل ځوی ابو علی دغور په امارت اوټاکلی شو. دغه وخت دغور ریاست د دربار غزنی د یو باجګذار ریاست حیثیت اختیار کړو.

**ابوعلی :-** یو زړهٔ سواندے، نیک خویه او رعیت پالونکے حاکم وو. تر خپل ژوندہ د دربار غزنی وفادار وو. لیکن د محمود غزنوی نه پس د سلطان مسعود په زمانه کښے دسلجوقی حوادثو په وجه د غزنی دسلطنت ویره ترهه دخلقو د زړونو نه پاشیدلی وه. چنانچه ابو علی دخپل وراره عباس بن شیس د لاسه اوو ژلے شو. او د هغهٔ په ځائے عباس د غور حکمران شو.

**عباس :-** یو ظالم جابر دخوی نه ډیر تریخ او مغرور بنیادم وو. په دغه ورځو کښے د غزنی حکمران ابراهیم بن مسعود وو. عباس دخپلے خود مختارۍ او دسلطنت غزنی سره زورآزمائی ته دومره لیواله وو چه هغهٔ دوه سپي ساتلی وو. د یو سپی نوم ئے ابراهیم ایښودلے وو. او بل سپے ئے په خپل نوم موسوم کړے وو. دا دواړه سپی به ئے په جنګ وروستل. او چه کله به دهغهٔ هم نام سپے په هغه بل باندے کامیاب شو. نو دے نه به ئے د سلطنت غزنی د فتحے فال اخستلو. دعباس د سلوک نه د خپل ریاست خلق ډیر تنګ وو. او دا ئے خواهش لرلو چه د غزنی سلطنت په غور حمله اوکړی. ولے په ابراهیم کښے دومره طاقت نهٔ وو چه دغور دخلقو د پریشانۍ نه ئے فائده اخستے وے. او په غور ئے حمله کړے وے. دغه وجه وه چه عباس به خپل ځان خود مختاره ګڼلو. لیکن د غور امیرانو په پټه ابراهیم ته په غور باندے دحملے دعوت ورکړو. د دے سردارانو په ډاډ ابراهیم په غور فوځ کشی اوکړه. هم په دغه مقابله کښے عباس د خپلو سردارانو د لاسه ګرفتار او ابراهیم ته حواله کړے شو. او هم د ابراهیم په قید کښے مړ شو.

عباس اګرچه یو ظالم حکمران وو. لیکن په علم نجوم او هیئت کښے ئے ډیر مهارت لرلو.

---

(۱) خوشنا ستا په حال (۲) سارۍ- همسر (۳) ځای (۴) مهرباني

هغهٔ یو قلا جوړه کړې وه. چه داسمان د برجونو مطابق په هغې کښې دولس برجونه وو او په هر برج کښې ئې دیرش دروازې په داسې حساب جوړې کړې وې چه په آسمان کښې به نمر په کوم برج کښې وو. هره ورځ به د قلا په هم هغه دروازه کښې څرګندېدلو. او په دې دستورئې نجومیان د هره ورځ د کړاؤ نه خلاص کړی وو. او هغوی به د قلا د برج د دروازې نه دا اندازه لګوله چه نمر په اسمان کښې په فلانی برج او فلانی تالع کښې دے. او دا په علم هیئت کښې د عباس په کمال مهارت یو دلیل وو. د عباس نه پس د هغهٔ ځوئے محمد د غور امیر شو. د خپل پلار برخلاف محمد د ډیرو ښو خویونو خاوند وو. د دهٔ په وخت کښې د غور په علاقه کښې امن امان وو. دے هم د ابراهیم باجګزار وو.

**قطب الدین حسن :-** د محمد نه پس د هغهٔ ځوئے قطب الدین حسن د غور امیر شو. د غه ورځو کښې د دربار غزنی په نسبت د سلجوقیانو شهرت او اقتدار عروج ته رسیدلے وو. قطب الدین هم د سلجوقیانو ډله او نیوله. لیکن د غور د علاقې پښتانهٔ ډیر سرزوراو سرکښی وو. او ترڅو چه به د حکومت واګې د یو مضبوط او جابر حکمران په لاس کښې نهٔ وې. تر هغه به دوی د حکومت پړی ته غاړه نهٔ کیښودله. د سلطان غزنی د کمزورئ په وجه په غور کښې بیا اړے ګړے وو. او قطب الدین حسن د امن قائمولو په کوشش کښې په یو قامی جګړه کښې او وژلے شو. او د هغهٔ نه پس د هغهٔ ځوی اعزالدین حسین د پلار جانشین شو.

**اعزالدین حسین :-** یو نیک خویه حاکم وو. په ملک کښې ئې امن وامان قائم کړو. په دغه ورځو کښې د غزنی تخت و تاج د سلجوقی سلطان سنجر په رحم وکرم موقوف وو. اعزالدین یو هوښیار او مدبر حاکم وو. هغه د دربار غزنی او سلجوقی دواړو سره خپل روابط ښهٔ ساتل. په دے ورځو کښې د حسن بن صباح فتنه هم په ترقئ وه. چنانچه سلطان سنجر د سیاسی اغراضو په بنا هم دا نهٔ غوښتله. چه د غور امارت د کمزورے شی. اعزالدین هم د دے موقع نه فائده واخستله. او د خپل طاقت په زیاتولو کښې لګیا شو. د دهٔ اووهٔ ځامن وو. شجاع الدین علی فخرالدین مسعود، قطب الدین محمد، سیف الدین سوری، علاوالدین حسین، شهاب الدین محمد او بهاوالدین سام. د پلار د وفات نه پس سیف الدین سوری د هغهٔ جانشین شو. او نور رونړه ئې په مختلفو علاقو حاکمان وو. ولے څه موده پس قطب الدین محمد چه په ملک الجبال هم مشهور دے. د خپلو رونړو نه په څه خبره مرور شو او غزنی ته راغے. د غه وخت د غزنی حکمران بهرام شاه وو. قطب الدین یو لائق امیر وو. بهرام شاه ورله خپله لور په نکاح ورکړه. ولے دا رشته د دواړو د پاره بختوره نهٔ شوه. لږے ورځې پس د

بهرام شاه او قطب الدين ترمينځ غلط فهمۍ پيدا شوے ـ چنانچه بهرام شاه هغهٔ ته په پټه زهر ورکړل ـ او مړ ئے کړو ـ د قطب الدين محمد په مرګ چه د هغهٔ رونړه خبر شو نو د ورور د بدل اخستو په وجه سيف الدين سوری د غور نه په غزنی باندے د حملے په غرض راروان شو ـ په بهرام کښے د سيف الدين د مقابلے طاقت نهٔ وو ـ نو د غزنی نه اوتښتيدو ـ سيف الدين په غزنی قبضه اوکړه ـ ولے د غزنی خلقو د غور د پښتنو دا قبضه د خپل ځان بے عزتی اوګڼله ـ ځکه چه دوی د دولت د کثرت او علومو فنونو په وجه خپل ځانونه د غور د خلقو په مقابله کښے مهذب ګڼل ـ په دے سبب هغوی په پټه د بهرام سره سازش اوکړو ـ او بهرام د غزنی د اميرانو په سازش په غزنی دوباره حمله اوکړه ـ د غه وخت کښے د سيف الدين سره د پښتنو خپل فوځ ډير کم وو ـ او د هغهٔ د کاميابۍ دارومدار د غزنی په فوځونو وو ـ ولے د غزنی اميرانو خو د وړاندے نه د بهرام سره سازش کړے وو ـ چنانچه د جنګ په موقع د غزنی فوځونه د سيف الدين نه بهرام ته واوړيدل ـ او سيف الدين ئے ګرفتار کړو ـ د ګرفتارۍ نه پس بهرام شاه د سيف الدين سره ډير ذليل سلوک اوکړو ـ او بيا ئے اووژلو ـ او د سيف الدين وزير سيد مجدالدين ئے هم په دار اوځيړولو ـ

چه د سيف الدين ررونه د دے واقعے نه خبر شول نو د خپل ورور د بدل اخستلو په غرض بهاؤالدين سام ( د سلطان معزالدين غوری پلار ) يو لښکر سره د غزنی باندے د حملے په غرض راروان شو ـ ليکن د غزنی تباهی د هغهٔ د لاسه مقرر نهٔ وه ـ او هغه په لار کښے مړ شو ـ او د خپل ورور بدل اخستو وصيت ئے علاؤالدين ته پريښود ـ چنانچه علاؤالدين د غزنی د حملے په نيت روان شو ـ په بهرام شاه کښے د علاؤالدين د مقابلے طاقت نهٔ وو ـ نو د صلحے صلاحيت په لړ کښے ئے ډير کوششونه اوکړل ـ ولے علاؤالدين د بهرام منتونه او کوششونه اونهٔ منل ـ او د انتقام په جوش کښے يشيدلے په غزنی ورواوخوت ـ قتل عام ئے شروع کړو ـ د غزنی ښارئے لوټے لوټے کړو ـ او اور ئے ورته کړو ـ د سلطان محمود ، مسعود او ابراهيم د قبرونو نه علاوه د نورو غزنوی بادشاهانو قبرونه ئے وران کړل ـ د هغوی هډوکی ئے د قبرونو نه راوويستل ـ او وے سوزول ـ هغه غزنے چه د سلطان محمود په زمانه کښے «عروس البلاد» وو ـ د خاورو ايرو يو ډيرے شو ـ د سيف الدين د وزير د قتل په بدل کښے ئے د غزنی يو څو سيدان اووژل ـ او بيا اووهٔ ورځے پس ئے د خپلو ورونړو صندوقونه (لاشونه) د ځان سره واخستل ـ او غور ته لاړ ـ د دے بے انصافۍ او انتهائی ظلم يو ه شرګنده نتيجه علاؤالدين

ته دا اورسیده چه ترنن ورځ پورې دجهان سوز په لقب یادیږی. علاوالدین د غزنی ددې فتح په باب کښې څه فخریه شعرونه هم وئیلی دی چه د هغې نه دا معلومیږی چه د بهرام شاه دمرستې او کومک په غرض شاید چه څنې هندو راجګان هم راغلی وو. او یا دا چه دغه وخت کښې د غزنی په فوځونو کښې هندوان هم شامل وو. او د هغوی کمانداران به د "راڼې" او "رانا" په خطابونو مشهور وو. ددې هندو فوځ په مړانه او وفادارئ دبهرام. ډیره تسلی وه. لکه چه دعلاوالدین ددې شعر نه معلومیږی. ؎

پشتئ خصم گرچه همه "رائے" و "رانا" بود
کردم بگرز خورد سر "رائے" و "رانا" بود

د علاؤالدین په لاس د غزنی د تباهئ نه پس د سلطان محمود د خاندان سلطنت په افغانستان کښې ختم شو. د غزنی او کابل په علاقو "غز" ترکانو قبضه اوکړه. دا خلق څه موده پس د غیاث الدین غوری او شهاب الدین غوری دلاسه تباه شول. دغزنی په فتح او ددې ښار په تباه کولو علاوالدین خپل ځان یو لوئې فاتح اوګڼلو. هغهٔ ددې نه پس خپل خاندان ته هم سترګې خړې کړې او د بهاؤالدین سام دوه ځامن غیاث الدین او شهاب الدین ئې په دې وجه قید کړل چه دوی د خپلو اوصافو له کبله په اولس او فوځ کښې ډیر مقبول وو. علاؤالدین د سلطان سنجر مقابلې ته هم تیار شو. او په یو جنګ کښې چه هغې کښې ددهٔ د خپلو امیرانو سازش وو. د سلطان سنجر په لاس قید او بندیوان شو. ولې سره د دې بدو خویونو هغه یو ښهٔ شاعر او حاضر جواب انسان وو. نو سلطان سنجر د ملکی او سیاسی اغراضو په خاطر هغه بیا آزاد کړو. انعام و اکرام ئې ورکړو. او په خپل زوړ دستورئې د غور په امارت پریښود.

مونږ په تیرو پاڼو کښې دا وئیلی وو چه د غور د شاهی ټبر او د غور د عام اولس ژبه پښتو وه. او په دې لړ کښې مو د ثبوت په ډول دامیر کروړ "ویاړنه" او د اسعد سوری د مرثیئ څه شعرونه لیکلی وو. د غزنی د تباهئ په موقع چه علاؤالدین کوم فخریه اشعار وئیلی دی هغه په فارسئ ژبه او تاریخونو کښې موجود دی. ددې نه دا معلومیږی چه علاوالدین په فارسئ ژبه هم ډیر قدرت لرلو. د محمود غزنوی د معارف پرورئ په نتیجه کښې فارسی ادب په هغه زمانه کښې د عروج انتها ته رسیدلے وو. همسې هم فارسی ژبه د ډیرې پخوانئ زمانې نه په دې ملکونو کښې متعارفه او مروجه وه. او د هغه زمانې د حکومتونو سرکاری ژبه وه. د دربار غزنی سره د غور د شاهی ټبر د نزدو تعلقاتو په وجه به د غور امیران هم د فارسئ ادب قدردان او سرپرست وو. او دا امیران به په خپله هم په فارسئ ژبه کښې ماهران وو. څکه چه دا ژبه د هغه

وخت یو علمی او مستند ژبه وه. نو دا قدرتی خبره ده چه د علاوالدین غوندے یو ذهین او حاضر جواب انسان به خپل فخریه خیالات په دے وجه په فارسئ کښے ظاهرول چه د هغه وخت مهذبه سوسائټي ترے خبرشی. ولے د غور د شاهی تبراو د غور د عام اولس ژبه پښتو وه. د دے قیاس مرسته د دے لاندے شعرونو نه کیږی. دا شعرونه د علاوالدین د زمانے د یو پښتون شاعر، شیخ تمین، دی چه د "شیخ کاکړ" ځوی او د غور په "ګجران" نومے کلی کښے به اوسیده

ے ګهیځ رڼا د لمر خوره سوه | زما په کور د ویر ناره خوره سوه
د بیلتون وږخ توره تیاره سوه | ژغ شو ناڅا په چه بیلتون راغے
زړه ے له دے ویرے شین دے | په ژړا ژړا چه ے ناورین دے
زرغون له اوښوے سادین دے | به نوُل نولیږم چه تاخون راغے
نه به بیایم نه به بیا را سی | نه به تیاره شپه زما رڼا شی
نه به شهیځ راته ځلا سی | بیلیږی پیرے اوس دیون راغے
د ښتن یار دے هیرے نه کړے | آغلیه مخ چه په بیا نه کړے
اوربل دے پریښو ته دا ته کړے | پرما دِ بل اور د کړون راغے[1]

د علاوالدین جهان سوز د وفات نه پس د هغه ځوئے سیف الدین محمد د غور امیر شو. ولے هغه ډیر زر د خپل سپه سالار عباس د لاسه اووژلے شو. او د غه شان د علاوالدین خاندان ختم شو. د دے نه پس د عباس د نورو امیرانو په مشوره غیاث الدین بن بهاؤالدین سام د غور امیر شو. لیکن د ده په تخت نشینئ فخرالدین مسعود ناراضا وو. چنانچه فخرالدین مسعود د بلخ او هرات حاکمان هم په خپله پره کړل. او د غیاث الدین د مقابلے په نیت د بامیان نه راروان شو. لیکن دا کورنے مخالفت لنډ کندو ختم شو. او غیاث الدین متفقه امیر او منلے شو. په دے ورځو کښے د سلجوقیانو طاقت هم کمزورے شوے وو. نو په دے وجه غیاث الدین ته د خپل سلطنت په توسیع کښے خاص مشکلات پیښ نه شول.

سلطان غیاث الدین او شهاب الدین دواړه د یو مور اولاد وو. په ورکوتوالی کښے به مور غیاث الدین ته حبشی او شهاب الدین ته زنګی وئیل. د دے نه دا معلومیږی چه شاید د خپلو همزولو په نسبت ډیر مضبوط او طاقتور وو. د شهزادګئ په زمانه کښے مشر ورور د شمس الدین او کشر ورور د شهاب الدین په نامه مشهور وو. د تخت نشینئ نه

---

[1] پټه خزانه صـ۶۳-۶۲

پس مشر ورور د غیاث الدین او کشر ورور د «معزالدین» په لقب مشهور شو۔

د تخت نشینئ نه پس غیاث الدین او شهاب الدین په غزنی حمله اوکړه۔ په دغه ورځو کښې به غزنی او په کابل د غز ترکانو قبضه وه۔ په جنګ کښې ترکانو ډیره مړدی اوکړه۔ او د دوی کامیابی یقینی وه۔ لیکن قدرت د غوریانو امداد اوکړو۔ او د ترکانو پښه او ښوئیده۔ په زرګونو قتل شول۔ او نورو تیښته اوکړه۔ د فتح نه پس غیاث الدین د غزنی حکومت خپل ورور شهاب الدین ته ورکړه او په خپله فیروز کوه ته لاړ۔ د دے نه پس د غزنی سلطنت د غور مقبوضه شوه۔ (سنه ۵۶۹ھ)۔

د غزنی د فتح نه پس غیاث الدین خپل سلطنت ته نوره توسیع هم ورکړه۔ او د خراسان، سیستان، ترکستان او ایران اکثره حصهٔ په خپل سلطنت کښې شامله کړه۔ په دے ټولو مهماتو کښې شهاب الدین د خپل ورورسره اوږه په اوږه ولاړ وو۔ هم د دهٔ په همت غوریانو په خوارزم شاهانو غلبه حاصله کړه۔ غیاث الدین د یو څلویښت کاله امارت او حکومت نه پس د درے شپیتو کالو په عمر کښې په کال سنه ۵۹۹ھ کښے په هرات کښے وفات شو۔ او مقبره ئے هم په دے ښار کښے ده۔

غیاث الدین د عالمانو فاضلانو قدردان او په سخاوت کښے ډیر مشهور وو۔ اګرچه دے شافعی مذهب او د دهٔ ورور شهاب الدین حنفی مذهب وو۔ ولے د مذهبی مسلک د دے اختلاف د دواړو ورونو په عام سلوک، تعلقاتو او ژوند ژواک کښے څه فرق نهٔ وو پیدا کړے۔ او دا د دواړو ورونو په وسعت نظر او سلامت طبع دلالت کوی۔

څه رنګ چه د امیر محمد سوری په مرګ د هغهٔ دوست او درباری شاعر «اسعد سوی» په پښتو ژبه کښے مرثیه وئیلی ده۔ دغه رنګ د غیاث الدین په ستائینه کښے هم د تائمنی نومے یو پښتون شاعر یو نظم موجود دے۔ د دے نظم نه یو څو شعرونه لاندے لیکلے شی۔ دا یو بل شهادت دے۔ په دے خبرے چه د غوریانو ژبه پښتو وه۔ او دوی پښتانهٔ وو۔ که چرے د غیاث الدین خپله مورنئ ژبه پښتو نهٔ وے۔ او هغه په پښتو نهٔ پو هیدلے۔ او د غور عام اولس هم د پښتو ژبے نه نابلده وے نو په پښتو ژبه د هغه د دے قصیدے او ستائینے څه اهمیت کیدے شو؟

## د تائمنی قصیده د سلطان غیاث الدین په ستائینه کښے[۱]

---

[۱] داخبره معلومه نهٔ ده چه تائمنی د دے شاعر تخلص دے۔ او که دا د دهٔ د قبیلے نامه ده۔ (نوبهٔ ۳۰۳ مخ)

نن زهٔ ژغیږم په صفت د سلطان — چه دے بادار غازی ملک د جهان

د فیروزکوه او غور رڼا ده له دهٔ — هم د تیرو تورو بریښنا ده له دهٔ

چه توره وکاږی چړتوګن کا خالی — غلیم ئے کله کړی په توره سیالی

غیاث الدین د غور زمرے عالیشان — د اسلام دین د دهٔ په توره روښان

ماد داوړ[۱] په مزکه اولیدل ارم — دا د جنت په څیر وو بڼ ښه خوږم

دہ فیروزکوه په څیر ودان دے نا — ښکلے هرګل څه ښهٔ خندان دے نا

دلته کړونګے[۲] دی څه ژغونه کوی — او بهٔ بهیږی سرود ونه کوی

هر سړے ګوری چه ولاړ وی حیران — کړی ننداره د خداوند د بستان

غیاث الدین د جهان ښر دے نا — عالم له دهٔ ډیر بهرور دے نا

هند ئے روښانه په اسلام که نا — له ځان ئے خوښ خیر الانام که نا

چه ئے په غورکښے ښلے زین کی نا — پر کافرانو ئے ناوړین[۳] کی نا

تل دِ برے وی د غازی په میدان

زهٔ تاشینی ستائینه کړم د سلطان



**سلطان محمد غوری:-** لکه چه اوو ئیلے شول نومورے سلطان د شهاب الدین او معزالدین په دواړو نومونو شهرت لری- ولے د محمد غوری په نامه زیات مشهور دے- د خپل ورور سلطان غیاث الدین په وخت کښے په کال ۵۶۹ھ کښے د غزنی نائب السلطنت او ټاکلے شو- او د دے نه پس ئے په هند باندے د حملو تابیا شروع کړه- په کال ۵۷۱ھ کښے ئے په ملتان حمله اوکړه- د ملتان په علاقه کښے د ابو الفتح داود بن نصر د زمانے نه د اسماعیلی مذهب عقائد خوارهٔ شوی وو- د حسن بن صباح داعیانو د علاؤالدین جهان سوز په زمانه کښے خاص د غور په علاقه کښے هم د دے عقائدو تخم کرلے وو- د دے خلقو په ظاهری زهد و تقویٰ په عام خلق دوکه کیدل- ممکنه ده چه په ملتان کښے د سلاطین غزنوی د تنزل په وجه دوی

---

(پاتے حاشیه له ۳۰۲ مخ):- تیمنی قبیله د غور یوه مشهوره قبیله ده- امکان لری چه شاعر هم د دے قبیلے سره تعلق لری- او خپل قبیلوی نوم ئے د تخلص په دول استعمال کړے وی- بهرحال د دے نه دا معلومیږی چه د غور د اکثرو خلقو ژبه پښتو وه- تاشینی یو عالم سړے معلومیږی او دا نهٔ شو وئیلے چه ګوندے هغهٔ ته به فارسی نهٔ ورتله او ځکه به ئے د بادشاه ستائینه په پښتو کښے کړی وی- ۱ ټیکے- نوم- ۲ د زمیندارو په باب کښے چه تاشینی څه لیکلی دی د هغے تائید د طبقات ناصری نه هم کیږی- طبقات ص۸۱ په حواله د پښتانهٔ شعراء اول ټوک ص۵۸- ۳ آبشارونه- ۴ آفت، عذاب، لوے تکلیف-

نور زور هم پیدا کړے وی - د یو اسلامی سلطنت په ګوانډ کښے د دے خلقو ترقی ډیره خطرناکه وه- په دے بنا محمد غوری په ملتان حمله اوکړه- او دا علاقه ئے په خپل سلطنت کښے شامله کړه-

په کال سنه ۵۷۳-۷۴ کښے محمد غوری د اوچ او ملتان په لاره په "نهرواله" حمله اوکړه. د دے ریاست راجه "بهیم دیو" اګرچه ورکوټے وو مګر د هغه د وفادارو سردارانو د سلطنت سخته مقابله اوکړه- او په جنګ کښے سلطان شکست بیا موند- په کال سنه ۵۷۵ سلطان محمد غوری په پېښور حمله اوکړه- او دا ابا سیند نه په قبله علاقه ئے په خپل سلطنت کښے شامله کړه- دغه وخت کښے دا علاقه د غزنوی خاندان د آخری باچا خسرو ملک په قبضه کښے وه- د دے حملے په وجه په ظاهره کښے دا معلومیږی چه د هند د فتوحاتو د پاره د سلطان په مخکښے دوه لارے وے- یوه د سنده په لاره د ګجرات په طرف- او په دے لاره سلطان شکست موندلے وو- او بله د پنجاب چه خسرو ملک پرحکومت کولو- د هند راجګانو به د خپلو اغراضو او مفادو په خاطر د خسرو ملک سره رابطه ساتله- او د مغربی حمله آورو په لرکښے د دهٔ د تقویت او موجودګئ خواهشمند وو- په حقیقت کښے د خسرو ملک طاقت و استحکام د هند د راجګانو د حفاظت یوه لویه ذریعه وه- دغه وجه وه چه سلطان محمد غوری هم په دے خبرو د غور کولو نه پس د خسرو ملک د مقبوضاتو په فتح کولو شروع اوکړه او په سنه ۵۸۲ کښے ئے لاهور هم فتح کړو- او خپل سلطنت ئے د سرهند پورے اورسولو-

د محمد غوری د ژوند مشهور واقعات د تراوړی جنګونه دی چه د راجپوت راجا پرتهوی راج او د دهٔ تر مینځ شوی وو- او د دے جنګونو په نتیجه کښے په هند کښے د اسلامی سلطنت بنیاد ونه کیښودلے شول. او په دے وجه محمد غوری ته دا فخر حاصل شو چه هغهٔ په هند کښے د اسلامی سلطنت بانی اوګڼلے شو-

پرتهوی راج په راجپوت قبائیلو کښے د "چوهان" خاندان سره تعلق لرلو- او یو ډیر زړور، ننګیالے او نامتو راجا وو - د خپلے خاندانی لویئ نه علاوه د خپلے ذاتی زړورتیا د عالمانو او توریالیانو د قدردانئ او د قام و وطن د مینے په وجه په ټول هند کښے معروف وو- دغه وخت کښے د هغهٔ په حکومت کښے د دهلی او اجمیر دواړه ریاستونه شامل وو- او د غزنی دور په آخری ورځو کښے د ستلج پورے علاقه هغهٔ په خپل سلطنت کښے شامله کړی وه- ولے چه محمد غوری د سرهند علاقه فتح کړه نو د هغهٔ د مقابلے په نیت روان شو- دغه وخت کښے محمد غوری د غزنی د تلو تکل کولو چه د پرتهوی راج مقابله ورله ضروری شوه-

د سرسوتي سيند په غاړه د تراوړي په مقام د دواړو فوځونو مقابله اوشوه. په اوله کښې دواړه فوځونه اوتښتيدل. ولې د فوځونو په دے تيښتې د محمد غوري وار خطا نهٔ شو. او د مرکزي فوځ په مدد ئې د هندوانو په فوځ يو زبردسته حمله اوکړه. په دغه وخت کښې د دهلي حاکم کهانډے راځې چه په هاتي سور وو. د سلطان مقابلے ته مخامخ شو. سلطان په هغهٔ يو داسے ګذار اوکړو چه د کهانډے راځې غاښونه مات شول. ولې کهانډے راځې هم بدل پرے نښو او په داسے قوت ئې په سلطان د تورے ګذار اوکړو. چه يو لاس ئې بيخي بېکاره شو. او نزدو وه چه داس نه پريوتلے وے مګر يو خلجي ځلمے سمدستي د سلطان په اس په هغهٔ پسے سور شو. سلطان ئې اوبيولو او د جنګ د ميښځ نه ئې اووېستلو.

د ملک يار غرشين دا رجزيه شعرونه غالباً چه هم په دے جنګ کښې او يا ممکنه ده چه د ملتان په جنګ کښې وئيلي شوي وي. ملک يار غرشين د سلطان محمد غوري معاصر او د هغهٔ په فوځونو کښې به شامل وو.

| | | |
|---|---|---|
| ځښتن مومل دے | اوس مو يرغل دے | هيواد د بل دے |
| | غازيانو ګورئ | ځښتن مومل دے |
| تورے تيرے کړئ | دشمن مو پرے کړئ | منګلے سرے کړئ |
| | ځمله به تښتو | ځښتن مومل دے |
| که ټينګ کړو زړونه | پر برې ئيونه | چه زمرې ئيونه |
| | اسلام راځنه دے | ځښتن مومل دے |
| غازيانو راشئ | ټول شاو خوا شئ | دشهاب په ملا شئ |
| | د شهاب په ملا شئ | ځښتن مومل دے |

په دے جنګ کښې د سلطان فوځونو تيښته اوکړه. او پرتهوي راج کامياب شو. د دے نه پس سلطان لاهور ته راغے. او يو څو معتبر سرداران ئې دلے پريښودل. او په خپله د فوځ سره غزني ته لاړ. د سلطان په خيال کښې د دے شکست وجه د ځينې سردارانو بزدلي وه. نو هغه ئې د پښتنو نه د غور او خراسان نورو سردارانو ته داوربشو توبرے ورپه غاړه کړے او حکم ئې اوکړو چه کوم سردار داوربشو د خوراک نه انکار اوکړي هغه به فوراً اووژلے شي.

ولې د دے شکست وجه يواځې د ځينې سردارانو بزدلي نهٔ شي کيدے. بلکه په حقيقت کښې د دے غټه وجه د هندوانو فوځي طاقت، د هغوي بيداري او په خپل مينځ کښې اتحاد وو. د محمود غزنوي د فياضۍ او د هغهٔ د جانشينو د کمزورۍ او په خپل مينځ کښې د بے اتفاقۍ له

کبله د هندوانو جنګی طاقت بیا ژوندے شوے وو. د غزنوی سلاطینو په زمانه کښے د هندوانو جنګی طاقت او فوځی مهارت دومره زیات شوے وو چه کله کله به دغه مسلمان حاکمانو د سرکشئ او بغاوت په موقع هندو جرنیلان او هندو فوځونه د هغوی په مقابله کښے لیږلے شول. د مسلمانانو سره اوږه په اوږه د جنګیدو په وجه د هندوانو حوصلے زیاتے شوے وے. او د مسلمانانو د بریالئ هغه خوف او ویره د دوی د زړونو نه وتلے وه. هندو راجګان به د خپل فوځی طاقت د زیاتولو سره سره د خپل سلطنت په توسیع کښے هم لګیا وو. او د راتلونکو خطراتو مقابلے ته هم په نظر کښے ساتلی وه.

په غزنی کښے سلطان د پرتهوی راج سره د دویم جنګ په تیاریانو کښے مصروف شو او چه هر قسم تیاری ئے اوکړه نو د یو لک شل زره فوځ سره د غزنی نه رړوان شو. او پینبور ته راغے. دلته ئے امیرانو او سردارانو ته انعامونه ورکړل. او د دے ځائے نه لاهور ته لاړ او د لاهور نه ئے د خپلو معتبرو استاذو په ذریعه د اسلامی اصولو مطابق پرتهوی راج ته د اسلام دعوت ورکړو. او څه رنګ چه توقع کیدے شوه پرتهوی راج د دے جواب په ډیرو سختو الفاظو کښے اوکړو.

پرتهوی راج د خپل امداد په غرض د هندوستان راجګانو ته هم دعوت ورکړو. او دے راجګانو د هغهٔ دا دعوت په ډیرے خوشحالئ قبول کړو. او په تادئ او تندئ سره د خپلو فوځونو د هغهٔ امداد ته راروان شول. د پرتهوی راج د لوری نه د محمد غوری سره داسے په تندئ جنګ ته اماده کیدل او د هندو راجګانو د هغهٔ په مرسته اودریدل د دے خبرے څرګند ثبوت دے چه مذهبی جوش هندوان سرفروشئ ته تیار کړی وو. او هغوی د هندوستان د ساتنے او د مسلمانانو د مدافعت په مقصد یو شوی وو.

د پرتهوی راج فوځونه په درے لکه څوانانو مشتمل وو. په دے کښے درے زره جنګی هاتیان او بے شماره « رکونه » هم وو. د هندوستان یو نیم سل راجګان د هغهٔ د مرستے په غرض د هغهٔ د جنډے لاندے راغونډ شوی وو. د جنګ نه اول پرتهوی راج د خپلو مرستیالو راجګانو په صلاح محمد غوری ته د دے مضمون یو خط اولیکلو چه په خپل ځان او په دے خپل بے سروسامانه فوځ رحم اوکړه او بیرته لاړ شه. موږ دا وعده کوو چه د تاسو تعاقب به نهٔ کوو. اوکه دا خبره دِ اونهٔ منله نو د راجپوتی تورے د ګذار نه به یو مسلمان هم ژوندے پاتے نهٔ شی.

مدبر سلطان د دے خط د مضمون نه پوهه شو چه هندو فوځ اګر که په شمار کښے ډیر

او په سازو سامان کښې بے مثال دے۔ ولے جنګ ته په وس مخ نۀ نیسی نو هغۀ هم د سیاست نه کار واخست۔ او د دے خط جواب ئے په ډیرو نرمو الفاظو کښې داسې ورکړو۔
.. زۀ ستاسو د دے نیکے مشورے شکریه ادا کووم۔ ولے زۀ د خپل ورور د حکم نه مجبور یم۔ ما ته دومره اجازت راکړئ چه زۀ د خپل ورور نه د بیرته تلو اجازت اوغواړم ۓ
پرتهوی راج د دے جواب نه د سلطان د کمزورئ اندازه اولګوله۔ او احتیاط ئے شا ته اوغورزولو۔ په دغه وخت کښې محمد غوری په دوی حمله اوکړه۔

د هندو سلطنت د قسمت د فیصلے دا جنګ په کال ۵۸۸ھ / ۱۱۹۲ء کښې د تراوړی په میدان کښې شروع شو۔ محمد غوری خپل فوځ څلور برخے کړے وو۔ او هره حصه به وار په وار جنګیدله۔ سلطان په خپله د دولس زره تجربه کار فوځ سره تیار ولاړ وو۔ د هدایت مطابق به د فوځ هره حصه دغه وخت دپاره جنګیدله او څه قدرے به وروستوکیدله۔ په دے چل د هندو فوځ ترتیب او صف بندی قائمه پاتے نۀ شوه۔ دغه وخت سلطان د خپل تازه دم فوځ سره حمله اوکړه۔ او په ایره بیا ټول فوځ په هندو فوځ یوه سخته حمله اوکړه۔ لاس په لاس، څله په څله او مرئ په مرئ د سحر نه تر ماښکیره پورے دوه رخه سپا هیان لګیا وو۔ آخر هندو فوځ د دے سیلاب ته ټینګ نۀ شو۔ ډیر توریالی راجګان او شاه زلمی په میدان کښې په خپلو وینو کښې رنګ بنګ پریوتل۔ پرتهوی راج هم په ځوانمرئ سره خپل سرداؤکړو۔ باقی فوځ ئے څه او تښتیدو او څه ګرفتار شو۔ د کروړونو روپو مال غنیمت د فتح مند فوځ په لاس راغے۔ دا جنګ د فیصلے جنګ وو۔ او په دے جنګ سره په هند کښې د مسلمانانو د سلطنت بنیاد کیښودلے شو چه د سکهلئ پورے قائم وو۔

د دے فتح نه پس سلطان د اجمیر په لور روان شو۔ هلته د پرتهوی راج ځوئے حکمران وو۔ دغه معمولی جنګ نه پس هغه مغلوب شو۔ ولے سلطان بیا هغۀ ته خپل ریاست ورا وبښلو۔ که چرے سلطان محمد غوری یو تنګ نظره انسان وے نو د پرتهوی راج د خاندان به ئے نوم نشان ورک کړے وو۔ ولے سلطان د اسلامی شرافت نه پوره پوره برخه لرله۔ او هغۀ د پرتهوی راج سلطنت هم د هغۀ په خاندان کښې پریښود۔ د اجمیر د فتحے نه پس سلطان، بیا نه، هم فتح کړه۔ او بیا د دهلی ته راغے۔ ولے د دهلی حاکم اطاعت او منلو نو سلطان د شریعت اسلامی مطابق په هغۀ هیڅ غم غرض اونۀ کړو۔ او د دهلی نه بهر بهر خپل وطن ته روان شو۔ دلته که د معترضینو دے اعتراض ته اوکتلے شی چه دوی په هندوستان باندے د مسلمانانو حملے د دولت او لوټ مار په غرض کړی نو د

دوی دا اعتراض بیخی بے بنیاده ثابتیږی ـ کم ازکم د محمد غوری په باب کښې ـ که چرے داسے وے نو د دهلی او اجمیر غونډے دولت منډ ښارونه به سلطان داسې امن امانی نۀ پریښودل ـ او ضرور به ئے دا ښارونه لوټ کړی وو ـ

سلطان دهند په مقبوضه علاقو د « کهرام » په ښار کښې چه د دهلی نه اوپامیله په قطب واقعه دے ـ خپل بریالے او نامتو جرنیل قطب الدین ایبک د خپل لوری نه نائب مقرر کړو ـ او په خپله غزنی ته لاړ ـ د دے نه وړاندے د غزنوی بادشاهانو په زمانه کښے د پنجاب نه په هغه خوا علاقو کښې به د دوی د لوری نه حاکمان نۀ مقرریدل ـ او چونکه دغه علاقه د پرتهوی راج په سلطنت کښې شامله وه ـ او سلطان په دے فاتحانه حق لرلو ـ پس دغه تقرری ګویا په هندوستان کښې د مسلمانانو د حکومت سنګِ بنیاد شو ـ

**فتح قنوج** :- په دغه زمانه کښې د هند په راجګانو کښې یل د نوم ناموس راجا جے چند وو ـ چه د قنوج حکمران وو ـ د پرتهوی راج او جے چند ترمینځه سخت مخالفت وو ـ دغه وجه وه چه هغۀ د پرتهوی راج په مرسته د تراوړی په جنګ کښې نۀ وو شامل شوے ـ په دے جنګ کښې د جے چند د نۀ شاملیدو نه ځینې خلقو دا خیال قائم کړے دے چه په پرتهوی راج باندے د محمد غوری حمله د جے چند په ایما شوے وه ـ ولے دا غلطه ده ځکه چه د پرتهوی راج په مرسته کښې د جے چند نه علاوه نور دومره امداد وو چه د جے چند شمولیت او نۀ شمولیت په څه خاص اثر نۀ پریښالو ـ او که چرے جے چند شامل هم وے نو نتیجه به هم هغه شان وه څه رنګ چه ظاهره شوی ده ـ د جے چند فوځی طاقت څه دومره زیات نۀ وو چه د جنګ رُخ ئے بدل کړے وے ـ بله دا چه که د جے چند او سلطان په خپل مینځ کښې سازش وے نو دومره زر به بیا هغه په جے چند حمله نۀ کوله ـ

غرض په کال ۵۹۰ھ / ۱۱۹۴ کښې سلطان د قنوج د فتح په غرض د غزنی نه راروان شو ـ د چند واړے په مقام د دواړو فوځونو مقابله اوشوه ـ ولے په کوم جوش و خروش چه د پرتهوی راج فوځونه جنګیدلی وو ـ د جے چند فوځونو د هغې په لسمه برخه هم مړدی ښکاره نۀ کړه بلکه د قطب الدین د اول حملے نه اوتښتیدل ـ او هاتیان او سازوسامان ئے پرے ښودـ

د دے فتح نه پس سلطان د قنوج په خزانو قبضه اوکړه ـ او د هغه ځائے نه بنارس ته روان شو ـ بنارس هم د جے چند په راج کښې او د قنوج نه پس د ګدئ دویم ځائے وو ـ سلطان په بنارس هم قبضه اوکړه ـ چونکه د پرتهوی راج شکست د هندوانو طاقت ته لویه صدمه رسولی وه ـ په دے بنا سلطان د هندوستان د فتح د پاره خپل بریالی جرنیلان کافی

اوګټل. چنانچه قطب الدین ایبک اجمیر، ګوالیار، ګجرات او بداؤن فتح کړل. بختیار خلجي بنګال رالاندې کړو. ناصر الدین قباچه سنده او بلوچستان قابو کړل. سلطان په خپله د خراسان په معاملاتو کښې ګټیا وو.

په کال ۵۹۹ه کښې د سلطان غیاث الدین غوري په وفات محمد غوري د هغهٔ جانشین شو. او خود مختاره بادشاه شو. په دې ورځو کښې هغه د خوارزم شاه په سلطنت حمله اوکړه. په ابتدا کښې خو محمد غوري کامیابي حاصله کړه. ولې ډیر زر خوارزم شاه ته د ترکانو امداد حاصل شو. او د دوی په وجه د محمد غوري فوځونو سخته ماتې اوموندله. په خپله محمد غوري د سلو کسانو د یو ټولي سره په ډیر ګراؤ د جنګ میدان نه ځان او ښکلو. د دې شکست په وجه د محمد غوري شهرت و طاقت ته ډیر نقصان اورسید. په ټول ملک کښې بغاوتونه شروع شول. ملتان هم باغي شو. په پنجاب کښې کهوکهرانو بغاوت اوکړو. د تیراه او خیبر پښتنو چه دغه وخت لا پکښې اسلام نهٔ وو خور شوې. د قافلې په وهلو او لوټلو کښې د وړاندې نه نور هم زیات سرګرم شو. غرض په ټول ملک کښې ارےګړے جوړ شو. په دغه وخت کښې سلطان لاهور ته راغې او د خپل وفادار جرنیل قطب الدین ایبک په کومک ئې حالات بیا قابو کړل. کهوکهرانو هم اطاعت اومنلو. او د تیراه او خیبر وغیره پښتانهٔ هم ایل شول.

فرشته د دې واقعاتو تفصیل داسې لیکي چه په کال ۶۰۲ه کښې سلطان د کهوکهرانو ګوشمالي اوکړه. او د یو مسلمان قیدي په ذریعه د کهوکهرانو یو سردار اسلام قبول کړو. او هغه د بادشاه دلوري نه د کهوکهرانو حاکم مقرر شو. او د دهٔ په ذریعه په کهوکهرانو کښې اسلام خور شو. هم په دغه کال د تیراه کفار چه د غزني او پنجاب په لار کښې په غزونو کښې اوسیدل او د مسلمانانو وژل او د هغوی تزنول به ئې ثواب ګڼلو. څنې په مرضئ او څنې په قهر او جبر اسلام ته راواوړیدل. او قریبًا درې ځلور لکه د زنار خاوندان په اسلام کښې داخل شول. او تر دې وخته چه (۱۰۱۸ه) دے دواړه قامونه یعني کهوکهران او پښتانهٔ په دین اسلام کښې ثابت قدم دي. او د دوی په عقیدو کښې څه فرق نهٔ دے راغلے[1].

سلطان محمد غوري چه د کهوکهرانو او پښتنو د بغاوت ختمولو نه اوزګار شو نو لاهور ته لاړ. او د والئ بامیان په نوم ئې د ترکستان د غیر مسلمو سره د جهاد د تیاریانو دپاره یو فرمان اولیږلو. او بیا په خپله هم د غزني په نیت رازوان شو. د " دهمیک " په مقام ئې کیمپ

---

[1] فرشته جلد اول ص۶۰

اوګولو. په دغه مقام د فرښتې د وینا مطابق د یو څو کهوکهرانو د لاسه چه د هغوی خپلوان په دے جنګونو کښې قتل شوے وو. د شپے په خپله خیمه کښې د شهادت پیاله نوش کړه[۱] دده په وفات دا قطعه وئیلی شوی ده. ـ

شهادت ملک بحر و بر معزالدین — کز ابتدائے جهان مثل او نیامد یک
سوم ز غرهٔ شعبان بسال شش صد و دو — فتاد دره غزنین به منزل دهمیک[۲]

د سلطان د شهادت نه پس د هغهٔ امیرانو د هغهٔ جنازه را اوچته کړه او د غزنی په نیت پیښور ته را اورسیدل. دلته کښې په امیرانو کښې مخالفت پیدا شو. د سلطان وزیر موئدالملک د کرے په لار غزنی ته د تلو خوا هشمند وو. ځکه چه په کرمه کښې سلطان تاج الدین یلدز حاکم وو. چه د سلطان معزالدین ډیر وفادار او اخلاص مند جرنیل وو. ولے نورو غوری امیرانو د بامیان حاکم بهاءالدین څخه د تلو خواهش لرلو. دا مخالفت دومره زیات شو چه د سخت جنګ ویره ترنه پیدا شوه. ولے آخر خواجه موئدالملک د غور امیران په خپل تار را واړول. او دوی د کرے او شلوزان په لار د غزنی تلو ته آماده شول. په لاره کښې د تیراه د غیر مسلمو پښتنو د لاسه ډیر اوتزنیدل. خو آخر تاج الدین یلدز ته اورسیدل. تاج الدین یلدز د سلطان په شهادت داسے ماتم اوکړو چه زوړ غم ئے بیا تازه کړو. غرض په ۲۲ر شعبان د سلطان جنازه غزنی ته اورسیده.

---

[۱] منهاج السراج په طبقات ناصری کښې د سلطان قاتل « فدائی » لیکی. او دا قول زیاتیے معلومیږی. د حسن بن صباح فدایانو ډیر عالمان او بادشاهان هم وژلی دی. د فدایانو د پاره د خپل مخالف وژل یو معمولی خبره وه. چونکه محمد غوری هم په ملتان کښې د ملحدانو بیخ کنی کړی وه. نو دا ډیره ممکنه ده چه د غه قاتل به فدائی ملحد وو. او دا احتمال هم کیدے شی چه د نسل له مخه به کهوکهر وو. ولے د عقیدے له مخه به فدائی ملحد وو. عبدالقادر بداولی په خپل تاریخ منتخب التواریخ کښې وائی چه امام فخرالدین رازی به هره جمعه د سلطان په لښکر کښې وعظ کولو. او سلطان به هم په کښې موجود وو. د سلطان د قتل په شپه کښې امام رازی هم ګرفتار شوے وو. چه دهٔ ته د فدائی کهوکهرانو د منصوبو علم وو. ولے د وزیر موئدالملک په سفارش او کوشش هغه پرے شو. د دے نه دا معلومیږی چه قاتل به هم د امام رازی مجلس ته تلو راتلو. او د هغهٔ سره به ئے ژور تعلق لرلو. او دا خبره بے د ظاهری اسلام نه ممکنه نهٔ وه. د غه کهوکهران به یقینًا فدایان وو. او خپل ځانونه بهٔ ئے د دے لوئے فاضل معتقد ظاهرول.

[۲] د دهمیک شناخت او تعین په یقینی ډول نهٔ دے شوے. ن ورځ د جهلم په ضلع کښې د «سوهاوه» ریلوے سټیشن سره نزدو په دے نوم یو مقام موجود دے. امکان لری چه د دے بادشاه د شهادت واقعه هم په دغه ځائے پلینه شوی وی.

او په هغه مقبره کښې چه د خپلې لور د پاره ئې جوړه کړې وه کښې ښخ شو ـ

د سلطان محمد غوری نه په غزنی کښې بې شماره خزانې پاتې شوې ـ د جواهراتو، سرو، سپینو زرو نه علاوه د غه وخت د غزنی په خزانه کښې پنځه سوه منه قیمتی الماس هم موجود وو ـ سلطان درې ځله د هندوستان سفر کړے وو ـ دوه ځله ئې شکست موندلے وو ـ او په دریم ځل کامیاب شوے وو ـ

څه رنګ چه د سلطان غیاث الدین غوری په ستائنه کښې د تائینی قصیده موجوده ده. دغه رنګ د سلطان محمد غوری په ستائینه کښې شکارندوی نوے یو پښتون شاعر هم یوه قصیده وئیلی ده ـ او دا بل شهادت دے ـ په دے خبرے چه د غور شاهی ټبراو د غور عام اولس اکثر پښتانهٔ وو ـ د شکارندوی د قصیدے یو څو شعرونه لاندے لیکلے شی ـ ے

د پسرلی هنبکلونکی[1] بیا کړی فریادونه ـ بیا ئې اونو[2] لل په غرونو کښې لعلونه
مزکه شنه لابنو[3] نه شنهٔ لینے سرے شوے ـ طیلسان[4] زمردی واغوسته غرونه
د نیسان مشاطے[5] لاس د مچیدو[6] دے ـ مرغلرو باندے او منبکال[7] بهو سنه
لکه ناوی چه سورتیک په تندی وکا، ـ هسے وکانال غتولو[8] سره پسولو[9] نه
د هندارو[10] په څیر غرونه سپین[11] وړنګن دی ـ چه په واورو باندے ځل وکا لمرونه
د شنسب دکهاله ختلے لمر دے، ـ د پسرلی په دود ودان له دهٔ رغونه
په زابل چه د بری په نیلی سورشی ـ په لاهورئې د میړانې ګزارونه
نهٔ به ده غوندے رون ستورے په هسک[12] ځلی ـ کهٔ څه پورته سی له غوره ډیر میړونه
نهٔ به څوک ځلی د غور سرهٔ راغونی کا ـ د داور تورے به څیرے کا ځلونه
یوخاوند شهاب الدین دے چه ئې وکا ـ په هر لوری هر هیوا د ته یرغلونه
په جوپو جوپو[13] ګړن ئې هند ته یون کا ـ چه د غور بادار همت وکا زغلونه
ئن په سیند باندے تیریږی یرغل کاندے ـ په پرتم[14] ئې زمری ریږدی په زنګلونه
څپان[15] سیندے هم له ډاره ایلا[16]ئی کا ـ پراوړ و وړی د غوریانو سبهٔ ویړونه
په هرکال اټک ددهٔ منبهٔ راغلهٔ کاندے ـ غوړوی په څنډ خپل پاستهٔ سالونه

[1] ښائسته کوونکی ـ مراد معشوق ګلونه وغیره [2] (و پاشل ـ در) غرونه ـ دبے ـ [3] څادر [4] دمګئ ـ نائټه ـ [5] دښکلولو قابل دے ـ [6] ښائسته ئې کړل ـ [7] د یو ګل نوم دے ـ [8] کالی زیورات ـ [9] آئینه ـ [10] روښن ـ رخښنده ـ [11] اسمان ـ [12] ډلے ډلے قافلے قافلے ـ [13] رعب ـ دبدبه ـ [14] ذخار ـ موجزن ـ [15] اطاعت ـ

پښتون خوا ښکلی ځلی چه زغلی هند ته — نو آغلیه[۱] پېغلے کانده ے اتسنړو نه
هر گهیځ[۲] چه نر ځوکیږی له خا تیزه[۳] — ځو چه یون کا د لویدیځه[۴] په قند[۵] و نه
که برېځړ[۶] وی که عزمه وی که برښل[۷] وی — که لړمل[۸] که لمر لوېده[۹] که ترملو[۱۰] نه
د شهاب جګړن[۱۱] به نه کښیني له زغلو — نه به پریږدی دا ځلمی ځپل بهیرو نه
زمری کله کاږی ځان له یرغلکریو[۱۲]، — ځوځی نه کا مات متونه ورمیږ ونه
بیا به جګ کا د بریو[۱۳] زړی[۱۴] په هند کښے — یا به پریږدی هم په دے چارے سرونه
یا به وران کابود تونونه[۱۵] د بمبنو — یا به سره کانده ے په وینو هیوادونه
په رښا اوسے ته تل د دین شهاب — نوم د تل وه په دریځ[۱۶] په نمزکونه
ځو رنا سی ستا په توره د هند لوریه — ځو چه نست کړی له بڼیه بود دوتونه

ستا په زیرمه دِ خاونده لوځ ځښتن وی
موږ خوستا په مرسته[۱۷] یونه سوچه یونه

**د سلطان محمد غوری جانشین** :- سلطان محمد غوری نارینه اولاد نه لرلو- او هغه په سلطنت کښے د موروثیت حامی هم نه وو- چنانچه د هغه په مرګ د هغه سلطنت په مختلفو افرادو تقسیم شو- د " فیروزکوه " په آبائی تخت د هغه وراره محمود غوری چه د غیاث الدین غوری ځوځے وو قابض شو- په " بامیان " د هغه نورو ترېورانو قبضه اوکړه- تاج الدین یلدز چه د سلطان محمد غوری غلام وو او د هغه په وخت کښے د کرمے حاکم وو- په غزنی قبضه اوکړه- او محمود غوری د ده دا قبضه اومنله- د غه شان د اباسین د غربی غاړے پورے علاقه د ده په حکومت کښے شامله شوه- ناصرالدین قباچه چه د محمد غوری یو بل غلام وو په سنده او ملتان کښے خپل حکومت قائم کړو- او قطب الدین ایبک په هندی علاقو حکمران پاتے شو- اګرچه دا ټول امیران هسے په نوم خو د محمود غوری تابع وو- او په خطبه کښے به د محمود غوری نوم لوستلے شو- ولے عملاً دوی ټول خود مختاره وو- د تاج الدین یلدز حکومت په ۱۲۱۵ء کښے د محمد شاه (خوارزم شاه) د لاسه ختم شو- محمد شاه هغه سړے وو چه د دے نه لس کاله اګاهو محمد غوری هم د هغه د لاسه شکست موندلے وو- دغه شان د اباسیند پورے علاقه د خوارزم شاه په سلطنت کښے شامله شوه- د فیروزکوه حکومت هم د محمود غوری په وفات ختم شو.

---

۱؎ ښکلی- ښائسته- ۲؎ سحر- ۳؎ مشرق- ۴؎ مغرب- ۵؎ تاخیر- ۶؎ د غاښت وخت- ۷؎ ماسپخین- ۸؎ مازیګر- ۹؎ ماښام- ۱۰؎ ماسخوتن- ۱۱؎ جنګجو- جنګ آور- ۱۲؎ یرغل کوونکی- ۱۳؎ فتوحات- ۱۴؎ جنډے- نشانونه- ۱۵؎ بُت خانے- ۱۶؎ ممبر- ۱۷؎ مسجد- ۱۸؎ مرسته- پرن- ۱۹؎ پټه خزانه ص۹۹

# مغل

لکه چه مووئیلی دی د محمد غوری د وفات نه پس د هغهٔ یو اعتباری غلام او جرنیل قطب الدین ایبک په هند کښے خپل آزاد او مستقل سلطنت تشکیل کړو۔ او د یو نوی سلسلے بانی وګرځیده۔ په دغه زمانه کښے د پښتنو طاقت هم د افغانستان نه هند ته منتقل شو۔ دے خلقو (پښتنو) د هند په ملک کښے اول د یو عظیم داؤ طابه فوځی طاقت حیثیت لرلو۔ او وروستو په دویٔ کښے ځنے قبیلے د هند د با اقتداره بادشاهانو حیثیت هم اوموندلو۔ ولے ترکومه حده چه د پښتنو د خپل ملک تعلق دے په دے عرصه کښے د پښتنو د سیاسی عروج تاریخ بیخی په تیرو کښے دے۔ او سوا د دے نه چه د غوری خاندان یو بل تهر دغه لرےموئے د پاره د مغلو په ماتحتیٔ کښے د افغانستان په څه حصے بیا اقتدار حاصل کړو۔ د پښتنو تاریخی حالات بیخی ورک دی۔ او په حقیقت کښے د پښتنو د تاریخ دا زمانه د هند سره تعلق لری۔ ولے اول د دے نه چه موږ په هند کښے د پښتنو د تاریخ لټون اوکړو۔ په افغانستان کښے د مغلو د اقتدار او په دوره کښے د پښتنو حالات بیا نول به غوره وی۔

د محمد غوری د وفات نه پس د فیروزکوه په آبائی تخت محمود غوری چه د غیاث الدین غوری ځوئے وو۔ قبضه اوکړه۔ په هندوستان کښے قطب الدین ایبک، په سنده او ملتان ناصرالدین قباچه او د اباسیند نه په قبله د غزنی پورے علاقے تاج الدین یلدز په خپل حکومت کښے شاملے کړے۔ وروستو د تاج الدین یلدز او محمود غوری مشترکه فوځونو نصرات او سیستان د افغانستان د موجوده سرحده پورے فتح کړهٔ۔ او بیائے په افغانی ترکستان حمله اوکړه۔ دا علاقه د (محمد شاه) خوارزم په سلطنت کښے شامله وه۔ ولے د محمد شاه دلاسه دویٔ شکست اوموند۔ تاج الدین یلدز بیا کرے ته راغے۔ او په غزنی د خوارزم شاه قبضه راغله۔ ولے د خوارزم شاه او تاج الدین یلدز په مینځ کښے روغه اوشوه۔ او تاج الدین یلدز په کرمه کښے حکمران پاتے شو۔ د دے نه پس تاج الدین یلدز په هندوستان حمله اوکړه۔ دغه وخت د هندوستان په تخت د غلام خاندان په لړکښے شمس الدین التمش حکمران وو۔ تاج الدین یلدز د

شمس الدین التمش دلاسه ماتې اوموندله - اوګرفتار شو - او په قید خانه کښې مړ شو -

په دغه زمانه کښې دخوارزم شاه طاقت انتها ته رسیدلے وو - ولے دے ترقۍ هغه دومره غاوره کړے وو چه هغه دخپل طاقت په درسته اندازه کښې خطا شو - دغزنۍ فتح کولو نه پس د هغهٔ ځوئے جلال الدین د پلار د نائب په ډول په غزنۍ کښې حکمران وو - ولے په غزنۍ باندے دخوارزم شاهانو اقتدار ایله پنځه کاله پاتې شو - او بیا د دوی سلطنت دچنګیزخان مغل دلاسه ختم شو -

لفظ « مغل » یا منګول یورپي مؤرخینو دایشیا د دومره قامونو دپاره استعمال کړے دے. چه د دے لفظ ماخذ معلومول ضروری دی -

په اوله کښې دا لفظ « مُنګ کُر » وو - او د دے معنیٰ وه « زړور او دلاور خلق » د دے لفظ معنیٰ د « سپینو زرو خلق » هم کیدے شي - دا خلق د ساتبریا د یو زوړ نام « تَنګ سوټۍ » او د پخوانو ترکي قبائیلو د نسل نه وو - او د دے نه سوا چه دوی چین فتح کړے وو - دچینیانو سره ددوئ نورځهٔ هیڅ تعلق نهٔ وو -

دا خلق دنګ ، لوړ ، مشقت پسند او پونده وو - چه د تهذیب و تمدن نه بیخی نابلده وو - ددوئ اولنے مسکن دګوبي ریګستانونه او د « تنډرا » علاقے وے - او د موسم د بدلیدو سره به دوینبو په تلاش کښې ځائے په ځائے ګرځیدل - یوناني مورخ هیرو دوټس دا خلق د « سیهتین » په لفظ یاد کړی دی - ډیره موده وړاندے به چینیانو دا خلق د « هونګنوهانو » په نامه یادول - دا لفظ (هونګنو) به په ټولو خانه بدوشو قبائیلو عائد کیدلو په دے وجه په دے خلقو د ملیف قبائیلو اطلاق نهٔ شو کیدلے - د چنګیز خان د ظهور په وخت کښې دا خلق په شلو قبیلو کښې ویشی وو - دا ټول قبائیل چنګیزخان په یو مرکز راغونډ کړل - او د دوی په مرسته ئے یو عظیم سلطنت تشکیل کړو -

چنګیز خان چه د دنیا په ظالمانو او خونړو انسانانو کښې سرفهرست ګڼلے شی - د مغل قبیلے یو خان وو - اصلي نوم ئے تموجین وو - د زیږیدنے تاریخ ئے په یقیني ډول نهٔ دے معلوم. البته داګمان کیدے شی چه په کال ۱۱۵۵ء کښې او یا د دے په حواو شا کښې زیږیدلے دے. د پلار د مرګ په وخت کښې د دولسو کالو هلک وو - په ابتداء کښې دخپلو دشمنانو دلاسه ډیر او تزنیدلو - ولے ډیر زر دخپل غیر معمولي تدبر او قابلیت په برکت په ټولو مشکلاتو غالب شو - او دخانه بدوشو یو لوئے فوځ ئے جمع کړو - او د دے فوځ په برکت ئے دچین ملک تر پیکنه پورے اونیوه - د سویل په لور دده سلطنت خوارزم شاه د حوریدونه

منع کړی وه-

علاوالدین محمد (خوارزم شاه) چه د چنگیز خان په شان په خپله هم د یوخانه بدوش قبیلې په اخلافو کښې وو- د یو وسیع سلطنت خاوند وو- د خوارزم شاه سلطنت دا باسیند د قبلیټرزې غاړې نه واخلې تر بغداد پورې او د بحیره خضر نه د خلیج فارس پورې خور وو- د خوارزم شاه اسلاف د سلجوق اعظم ملک شاه غلامان او پیاله بردار پاتې شوی وو- او وروستو دا اقتدارخاوندان شوی وو- خوارزم شاه یوجری او زړورسپاهی وو- د سیاست د کړ لیچونو نه هم هغه بنهٔ خبردار وو- ولې ډیر سفاک، خود پسند او حد په هورته بخیل وو- عسکری طاقت ئې په شاور لکه خوارزی ترکانو مشهور وو- لیکن د ضرورت په وخت کښې به ئې نور فوځی طاقت هم اودرولے شو- او د دے طاقت او اقتدار په وجه ورنه د بغداد خلیفه هم په ویره کښې وو- د غه وجه وه چه د چنگیز خان به پارولو کښې د بغداد خلیفه هم د خپل وس مطابق حصه اخستی وه-

د چین د فتح نه پس چنگیز خان د یو وسیع سلطنت او یو خوفناک طاقت مالک شوے وو- د غه وخت لا هغه په پوره طور د اسلامی ملکونو د شان و شوکت و اقتدار نه خبردار نهٔ وو- البته د اسلامی سوداګرانو په ذریعه هغه د مسلمانانو د دولت، شان وشوکت او صناعت نه متأثر وو- بالخصوص د مسلمانانو وسلے ئې ډیرے خوښیے وے- او د مسلمانانو سره د تجارتی تعلقاتو قائمولو خواهشمند وو- او په دے ذریعه ئې د اسلامی ملکونو حالات معلومول هم مد نظر وو- په دے سلسله کښې هغه د یو څو مسلمان سوداګرانو په ذریعه ئې خوارزم شاه ته دا پیغام ورلو لیږلو-

زهٔ تا له مبارکبادی درکوم- زهٔ ستا د قوت و شان شوکت نه هم خبردار یم- ستا د سلطنت وسعت راته هم معلوم دے- د غه وجه ده چه زهٔ تا خپل عزیز څوئے ګڼم. تا له دِ دا هم معلومه وی چه ما د چین ملک فتح کړے دے- او ډیر ترکی قبائیلے هم ایل کړی دی- زما ملک د سپاهیانو یوکیپ او د سپینو زرو یو درنګ دے. ماله د نورو ملکونو ضرورت هم نشته- ماله دا غوره معلومیږی چه، زما او ستا د رعیت په میڼځ کښې تجارتی تعلقات قائم شی- او په دے کښې به د دواړو فائده وی؟

اګرچه د چنګیز خان دا پیغام په ظاهره کښې ډیر نرم او بے ضرره ښکاریدو لیکن د دے په تهه کښې د چنګیز خان د شان و شوکت د اظهار او د خوارزم شاه د ویرولو او د هغهٔ د بے عزتۍ جذبه پټه وه- په د غه زمانه کښې به یو شهنشاه د «څوی» لفظ د خپلو

باجګزارو بادشاهانو د پاره استعمالولو. دغه شان د ترکی قبائیلو د ایل کولو ذکرهم د خوارزم شاه بې عزتي وه ځکه چه خوارزم شاه پخپله هم ترک وو.

به هرحال د دے پیغام سره چنګیزخان د خوارزم شاه د پاره څه تحفې هم رالیږلے وے. دا سفارت کامیاب شو. او خوارزم شاه د چنګیزخان سره د تجارتي تعلقاتو په قائمولو آماده شو. او کال نیم د دواړو سلطنتونو ترمینځه تجارتي تعلقات قائم وو. لیکن د دوی دا تعلقات ډیر زر خراب شول. او د دے وجه دا وه چه د خوارزم شاه د سلطنت د یو سرحدی قلا (اترار) محافظ افسر د چنګیزخان د سلطنت نه راتلونکی یوه قافله په دے وجه ګرفتاره کړه. چه په هغې کښې د هغه حاکم د معلوماتو مطابق د چنګیزخان جاسوسان هم راغلی وو. د دے قافلے په باب کښې قاعدار د خوارزم شاه نه احکامات اوغوښتل. او خوارزم شاه هغهٔ ته د ټولے قافلے د وژلو حکم واستولو. او د دے حکم تعمیل اوشو.

په دغه وخت کښې د چنګیزخان داقتدار او شان وشوکت درز نورو اسلامی ملکونو ته هم رسیدلے وو. او چونکه خلیفه بغداد په زړهٔ کښې د خوارزم شاه نه ویره لرله. نو هغهٔ په یو عجیبه طریقه خپل یو قاصد د چنګیزخان په خدمت کښے په دے غرض اولیږلو چه هغه د خوارزم شاه خلاف اوپاوری. د چنګیزخان سلطنت ته د تلو لار چونکه د خوارزم شاه په سلطنت کښے تیریدله. نو د افشائے راز د خطرے په وجه خلیفه د خپل قاصد په خرټیلی سر خپل پیغام او د قاصد منصب په یو آتشی قلم لیکلے وو. او کوم وخت چه د هغهٔ په سر وبینتهٔ بیا رالوئے شول نو دغه وخت قاصد په خپل مهم روان شوے وو.

په دے دستور د خلیفه قاصد د چنګیزخان په خدمت کښے حاضرشو. او چه د قاصد د درخواست مطابق د هغهٔ سر اوخرټیلے شو. نو د خلیفه پیغام او د هغه قاصد منصب معلوم شو. په دے پیغام کښے خلیفه په ډیره خاکسارئ د خوارزم شاه برخلاف چنګیزخان نه د مرستے سوال کړے وو. ولے چنګیزخان دے پیغام ته څه خاص توجه او نهٔ کړه. او د دے وجه شاید چه دا وی چه دا قاصد یوائے راغلے او په ډیره ذلیله طریقه ئے د چنګیزخان نه د مرستے سوال کړے وو. او دا هم کیدے شی چه دغه وخت لا د چنګیزخان او خوارزم ترمینځه تجارتي معاهده هم وه.

ولے څه موده پس چنګیزخان د خپلے قافلے د وژلو نه خبرشو نو هغهٔ دا ځل د احتجاج په شکل کښے خپل یو څو کاتبان خوارزم شاه ته وراولیږل. لیکن د خوارزم شاه په وهم اوګمان کښے هم د مغلو د وحشت او بربریت تصور نهٔ شو راتلے. نو هغهٔ دا ځل

هم دے تدبیرئ نه کار واخست. او د دے قاصدانو مشر امیرئے اووژلو او د نورو بیرۍ ئے او سوزولے. او په دے حیثیت چنگیز خان ته بیرته اولیږل. د چنگیز خان غوندے خونړی انسان د پاره دا یو کافی بهانه وه. چنانچه هغه ډیر او پاریدلو. دا ځل ئے دا یو مختصر مگر خوفناک پیغام خوارزم شاه ته اولیږلو.

" تاجنگ خوښ کړے دے. اوس چه څه کیدونکی دی هغه به ضرور اوشی. او څه کیدونکی دی؟ دا صرف خدائے ته معلوم دی " او د دے نه پس چنگیز خان دوه لکه فوځ سره د خوارزم شاه مقابلے ته رارون شو.

لکه چه وئیلے شوی دی. د خوارزم شاه فوځئ طاقت د چنگیز خان په مقابله کښے ډیر زیات وو. په جرأت او شجاعت کښے هم ترک د مغلو نه څه کم نۀ وو. لیکن په جنگی هنر کښے د چنگیز خان فوځونه په ترکو بالا دست وو. دے وحشی او خونړی انسان د فنون جنگ او ضبط و تنظیم دا سے صفات لرل. چه د هغه وخت یو سپه سالارهم د دۀ مقابله نۀ شوه کولے. خوارزم شاه د مغلو مقابلے ته وړومبے روان شو. د مغلو او ترکو وړومبئ مقابله د سیر دریا په بالائ وادئ کښے په یو عزیئیزه علاقه کښے راغله. او اگرچه په دے موقع مغل فوځونه د جنگی مصلحت او د خپلے مشهورے پالیسئ مطابق د جنگ نه پس او تښتیدل. لیکن په جنگ کښے د خوارزم شاه یو لک شپیتۀ زره فوځیان وژلی شوی وو. او دے واقع د خوارزم شاه په زړۀ د مغلو هیبت داسے کښینولو چه هغه روڅا د مغلو نه مغلوب شو. او د دے نه پس چه د مغلو او خوارزم شاه تر مینځه هر څو مره جنگونه اوشول. په یو موقع هم د خوارزم شاه پښے ټینگے نۀ شوے. او د دے نتیجه دا شوه چه په خپل وسیع سلطنت کښے خوارزم شاه د پاره یوه ټوټه داسے مزکه پاتے نۀ شوه چه په هغے کښے دے د مغلو نه په امن پاتے شوے وے. آخر په ډیر بد حال کښے د بحیرہ خضر په یو ټاپو کښے پټ شو. او د ډیر غم او نول له کبله د کال ۱۲۲۰ کښے د گمنامئ او بے کسئ په حالت کښے مړ شو.

ولے د محمد شاه (خوارزم) ځوئے جلال الدین د پلار نه بیخی یو بیل قسم انسان وو. دے ځوانمرد شهزاده د چنگیز خان د استبداد برخلاف فوځونه جمع کړل. او د مغلو مقابله ئے شروع کړه. هغه چه به کوم ښار ته اورسیدۀ نو د هغه ځائے په خلقو کښے به ئے جوش و خروش پیدا کړو. ولے ډیر زر به مغل بیا د هغه ښار نه تاو شوی وو. د غه وجه وه چه د چنگیزی فوځونو موثره مقابله د هغۀ د پاره گرانه وه. د کال ۱۲۳۱ د خزان

په موسم کښې جلال الدين د افغانستان په علاقو کښې په فوځونو جمع کولو کښې لګيا وو - چه چنګيزخان د دغه د سرګرمو نه خبر شو - نو د دغه په تعاقب کښې د شپيته زره فوځ سره را روان شو - د چنګيزخان په لار کښې دکوه بابا په زنځيرئ کښې د باميان مسلح او تاريخي ښار واقع وو - چه چنګيزخان باميان ته راغے نو د فوځ يوه حصه ئے د جلال الدين په تعاقب کښې اوليږله - او په خپله ئے د باميان ، محاصره شروع کړه - د مغل فوځ او جلال الدين مقابله د پروان (اوسنی جبل السراج) په علاقه کښې راغله دغه وخت د جلال الدين په مرسته ډير پښتانه قبائيل هم اودريدلی وو - د ترکو او پښتنو دے مشترکه فوځونو مغل فوځ ته فاشه ماتے ورکړه - ليکن فاتح شهزاده څه رنګ چه د شکست په وخت کښې خپل ځان مدبر ثابت کړے وو - دغه شان ئے د دے فتح نه سمدستی فائده وا نه خستله - او ډير زر چنګيزخان يو بل فوځ د پښتنو قبائيلو په مقابله کښې اوليږلو - او د پښتنو امدادئے د جلال الدين په لور بند کړو - په خپله چنګيزخان د باميان په محاصره کښې د ډيرے سختئ نه کار واخست - او دمره حربه ئے استعمال کړه - ليکن د محصورينو په همت او مقاومت کښې څه فرق نه راتلو - تردے چه چنګيزخان دومره قهر واخست چه قسم ئے اوخوړ چه تر څو دا ښار تباه کړے نه وی او خپل کيمپ پورے د دے خلقو د وينو سيلاب نه وی بيولے تر هغه وخته به آرام او نه کړم - د دے نه پس چنګيزخان د يو آخری حملے هدايت اوکړو - او په خپله هم په حمله کښې شامل شو - په دے حمله کښې د چنګيزخان يو نمسے هم اووژلے شو - او په دے خبره چنګيزخان نور هم قهر واخست - آخر د ډير کشت و خون نه پس په قلا کښې يو شګاف اوشو - او په دے ذريعه مغل فوځونه په قلا کښې ور ننوتل - د قلا د ننه چه مغل فوځونو کوم ظلمونه اوکړل - د هغے تفصيل بيانول هم ډير خوفناک معلوميږی - جماتونه ئے اوسوزول - کورونه او محلونه ئے وران کړل - د ښار ټول استوګن واړه زاړه نر ښځے ئے اووژل - او د خپل قسم پوره کولو په غرض چه د بنيادمو د وينو سيلاب د هغه تر لښکرګاه او نه رسيد نو سالرونکے هر يو څيزئے حلال کړو - او د وينو سيلاب ئے تر خپل کيمپ اورسولو - په باميان کښې چه مغلو کوم ظلمونه کړی وو - هغه دومره زيات ووچه د مغلو په شان بے رحمو خلقو ته پرے هم رحم راغلو - او دوی د باميان ښار ته د موبيخ يعنی دغم ښار اووے -

د باميان نه پس چنګيزخان د جلال الدين په تعاقب کښې د غزنی په لور روان شو.

په لار کښې د جلال الدين نه شکست خورده مغل فوځ هم د هغه سره يوځائے شو. چنګيز خان د پښتنو امداد د جلال الدين په لور بند کړے وو. نو د هغه د پاره د افغانستان په زمکه د مغلو سره مقابله ګرانه شوه. له ناچاره ورځ جلال الدين د خپل ديرش زره فوځ سره د غزونو نه راښکته شو. او د اباسيند غاړے ته راغے. د هغه دا اراده وه چه په اباسيند پورے شي او د سلطان د دهلي نه د مغلو برخلاف مدد حاصل کړي. ليکن هغه په دے اراده کښې کامياب نه شو. ځکه چه مغل فوځونه په ډيرے تندئ د هغه په تعاقب کښې راروان وو. او د هغه نه د يو ورځ د مزل په فاصله وو. په دے موقع جلال الدين د سيند مخه اونيوله. ولے د سيند په غاړه هغه ته دا معلومه شوه چه هغه کوم ځائے ته راغلے دے هلته سيند ډير تند و تيز بهيږي. او بغير د پل نه په دومره تيز و تند اوبو کښې پورے وتل ګران دي. دا ځائے غالباً چه د خوشحال ګړه په خوا وشا کښې ؤ. دغه وه چه هغه د چنګيز خان مقابلے ته بيا راستون شو. او د خپل جانباز مختصر فوځ سره د بے رحم مغلو آخري مقابلے ته تيار شو.

جلال الدين په ډير استقلال اول دا حکم اوکړو. چه د سيند په غاړه هر څومره کشتئ چه موجودے دي. هغه دِ اوسوزولے شي. په دے غرض چه د هغه د سپاهيانو په زړونو کښې د تيښتے خيال پيدا نه شي. د دے نه پس د جنګ د پاره هغه يو موزون ځائے خوښ کړو. او دا ئے غوره اوګڼله چه هم په دغه ځائے مغلو سره قطعي او آخري فيصله اوکړي. ابتدا کښې مسلمانان په ډيرے بهادرئ او جنګيدل. او په مغل فوځونو کښې ورننوتل. په خپله جلال الدين د خپلو منتخب فوځي دستو سره د چنګيز خان په تلاش کښې د مغل فوځ په قلب ورننوتو. ولے د بده مرغه چنګيز خان ئے او نه موندلو. د يو ساعت د پاره دا سے ښکاره شوه چه مسلمانان بريالي شول. مغل فوځونه ټول منتشر شول. ليکن دا د مغلو جنګي چال وو. لږ ساعت پس مغل بيا رايوځائے شول. او په مسلمانانو ئے حمله اوکړه. چنګيز خان څنې فوځي دستے په ډيرے رازدارئ کښې د مسلمانانو شا ته هم اوليږلے. په دے ډول مسلمانان په مغل فوځونو کښې ګير شول. د نا اميدئ په دے حالت کښې جلال الدين بيا په مغل فوځ يو زوروره حمله اوکړه. ليکن په دے کوشش کښې د هغه سره صرف اووه سوه جانباز پاتے شوي وو.

دغه وخت جلال الدين د نورے مقابلے نه نا اميده شو نو هغه ښه په تسلئ خپله زغره اوويستله او خپله توره لينده او غشي ئے د ځان سره واخستل. په اس سور شو او ديوشل فټه اوچت شونډه ورخته نه ئے په اباسيند کښې ورا و دانګل. او د اباسيند په خونړئ چپو

کښې ورکډ شو۔ او په لامبولامبو یې غاړې ته اووتلو۔ او هلته ئې بنېۀ په آرام داس نه زین کوز کړو۔ او خپلې جامې ئې د اچولو په غرض نمر ته او غوړولې۔ چنګیزخان د جلال الدین د ژوندی ګرفتارولو حکم کړے وو۔ لیکن هغه اوس د مغلو د طاقت نه بهر وو۔ مغل فوځ د جلال الدین آخری پاتې شوی فوځونو سره په جنګ لګیا وو۔ دغه وخت چنګیزخان هغه ځائې ته راغې دکوم ځائې نه چه جلال الدین په سیند کښې دانګلی وو۔ څه ساعت خو چنګیزخان ګوته په خُله جلال الدین ته په حیرانئ کتل۔ او بیائې ناڅاپه دا اووے " خوش نصیبه دے هغه پلار چه د هغۀ څوئې دومره زړور او دلاور دی " اګرچه په دے موقع چنګیز خان خو د جلال الدین تعریف اوکړو۔ لیکن دا ظاهره ده چه دچنګیزخان د لاسه د هغۀ وژل یقینی وو۔

څو ورځې پس مغل فوځونه د جلال الدین په تعاقب کښې په اباسیند پورے وتل۔ او د ملتان او لاهور پورے علاقه ئې تاخت و تاراج کړه۔ ولے جلال الدین ئې په لاس رانغلو۔ جلال الدین اګرچه د مغلو د مرګ نه بچ شو۔ لیکن د هغۀ د اقتدار و عظمت دوره ختمه شوی وه۔ بیا هم هغه د مغلو سره په جنګونو کښې لګیا وو۔ لیکن دغه وخت د هغۀ حیثیت د یو داسے جنګیالی او توریالی وو چه د هغۀ خپل وطن نۀ وی۔

د اباسیند د غاړے دا جنګ آخری جنګ وو۔ چه په هغې کښې خوارزمی عسکرو د مغلو سره شدیده او په ډیر استقلال او بهادرئ مقابله کړی وه۔ ولے د دے نه پس د تبت نه واخله د بحیره خضر پورے د ټولو ملکونو د مقاومت طاقت ختم شوے وو۔

چنګیز خان خو د جلال الدین په نیولو کښې کامیاب نۀ شو۔ ولے هغۀ خپله غصه د غزنی په تباهئ سره کړه۔ د غزنی ښار چه د سلطان محمود په زمانه کښې په " عروس البلاد " مشهور وو۔ او د تهذیب و تمدن و ثقافت او علومو فنونو یو لوئې مرکز وو۔ په اول ځل د علاوالدین جهان سوز د لاسه تباه شوے وو۔ او په دویم ځل بیا د چنګیزخان د لاسه تباه شو۔ شاهی عمارات، مدرسے کاروان سرایونه، عالی شان عمارتونه، ښکلی او تروتازه باغونه، هرڅه بیا تالا ترغا شو۔ او د مسلمانانو د تهذیب و ثقافت دا لوئې مرکز د چنګیزخان په خونړو لاسولو د غاورو په ډیریو کښې بدل شو۔ دا واقعات د سنه ۱۲۲۲ء وو۔

په افغانستان او ترکستان کښې د تباهئ نه پس چنګیزخان خپل وطن ته لاړو او د هغه ځائې نه ئې بیا په چین حمله اوکړه۔ او هلته ئې خپل فتوحات مکمل کړل۔ او هم په دغه ملک کښې په سنه ۱۲۲۷ء کښې مړ شو۔ په دے عرصه کښې جلال الدین د خپل حکومت د فتح کولو ډیر کوششونه اوکړل۔ او د ګرجستان او آذربائیجان علاقے ئې د مغلو نه فتح کړے ولے هغه په خپلو

کوششونو کښې کامیاب نهٔ شو۔ او د افغانستان علاقې د ۱۲۵۱ سنه پورې د چنګیز خان د اولاد په قبضه کښې وې۔ جلال الدین په ۶۲۸ھ/۱۲۳۰ سنه کښې دیوکرد د لاسه اووژلے شو۔ او د هغهٔ په مرګ د خوارزمیانو د سلطنت خاتمه اوشوه۔

د چنګیز خان او د هغهٔ د اولاد د استیلا دوره د ټولو اسلامی ملکونو او افغانستان د پاره د تباهۍ او بربادۍ دوره وه۔ په دې لنډه ګنډه دوره کښې ښارونه وران شول د تهذیب و تمدن آثار ورک شول، په ملکونو خلق اووژلے شول۔ او ټولو اسلامی ملکونو ته یو داسې نقصان اورسید چه د هغې تلافی بیا ناممکنه وه۔ په دې جنګونو کښې مغلو په مسلمانانو دومره ظلمونه کړی وو چه د هغې خونړۍ تفصیلات بیا نول هم ډیر خوفناک معلومیږی۔ دا داسې جنګونه وو چه په دې کښې د نفرت او دقهٔ دشمنۍ نه بغیر د بنیادمو قتل عام شوے وو۔ او مقصد ئې صرف د بنیاد مو تباه کول وو۔ دے قتل عام د اسلامی ملکونو پر رونق او آباد ښارونه د خاورو او ملبو ډیرانونه کړی وو۔ د دې قتل عام نه چه کوم خلق په اتفاق سره بچ شوی وو، هغوی په روحانی طور دومره زیلی شوی او مغلوب شوی وو چه د پټیدو نه بغیر نور هیڅ کار نهٔ وو پاتې شوے۔ په هغوی ویرې او ناامیدۍ دومره غلبه کړی وه چه هغهٔ به د دې وران شوو ښارونو د کنډو والو په پرېښولو اماده نهٔ وو۔ او اکثر به د هغه پرانګانو لیوانو خوراک کیدل۔ کوم چه به د خوراک په تلاش کښې دے کنډو والو ته راتال۔ چنګیز خان دا حکم کړے وو۔ چه کوم ښارونه هغهٔ وران کړی دی په هغې کښې دِ بیا انسانان آباد نهٔ شی۔ د غه وجه ده چه هغه ښارونه چه د چنګیز د حملې نه اول د تهذیب و تمدن او علومو او فنونو مرکزونه وو۔ د دے نه پس په دے مزکه د هغه ښارونو نښې نښانې د داغونو په دول پاتې وې۔ دا وحشی خانه بدوش د رحم د لفظ نه ناآشنا وو۔ او په حقیقت کښې د مسلمانانو د پاره د خدائے یو قهر وو۔

د چنګیز خان نه پس ماوراالنهر، بدخشان او د افغانستان علاقې د چنګیز خان د دویم ځوی "چغتائی" په برخه کښې رسیدلے وې۔ ولے داسې معلومیږی چه دا ملک د دوی په خیال کښې نابوده او بې ښې بې توښې وو۔ نو په دے وجه ئې په دے ملک د قبضې ساتلو یا د قه سخت انتظامی قوانینو جاری کولو په لور توجه او نهٔ کړه۔ سوا د دے نه چه د غور په علاقه کښې دوی ډیر مغل فوځیان آباد کړل۔ دا مغل آبادکار نن ورځ په هزاره قام مشهور دی۔ او د دوی د دے نامے په وجه د غور علاقې ته "هزاره جات" وئیلے شی۔

په کومو ورځو کښې چه د غلام خاندان په سلسله کښې سلطان ناصرالدین محمود د هند باچا او بلبن د هغهٔ وزیر وو په دغه زمانه کښې دچغتائ مغلو حملے په لاهور او په پنجاب باندے جاری وے د دے حملو دمدافعت دپاره هندی باچا شیرخان نومے د پنجاب ګورنر مقرر کړو. شیرخان یو ډیر توریالے او باهمته انسان وو. دے توریالی انسان نهٔ صرف د مغلو د حملو مؤثر مدافعت اوکړو. بلکه دافغانستان په مزکه هم ورننوتو. او غزنی ئے فتح کړو. او قریبًا څلویښت کاله پس ئے هلته بیا اسلامی خطبه اولوستله. او د کابل علاقے ئے دغزنی سلطنت سره اوګنډلے. ولے داسے معلومیږی چه د شیرخان د مرګ نه پس دا علاقے بیا د هندی سلطنت نه جدا شوے. او د مغلو حملے بیا په هند شروع شوے.

# دکرت کورنۍ

پۀ کومو ورځو کښې چه په هند کښې سلطان ناصرالدین محمود حکمران وو ـ په دغه ورځو کښې په غربي افغانستان کښې د پښتنو د یو نوی کورنۍ بادشاهي په هرات کښې قائمه شوه ـ د دے سلسلے باني شمس الدین کرت نومیدهٔ ـ چه په کال ۶۴۳ھ ۱۲۴۵ء کښې د چنګیزخان د استیلا نه وروستوئے په هرات کښې خپل اقتدار قائم کړو ـ او خپل ځان ته ئے د "ملک" خطاب او ټاکلو ـ دا خاندان هم د غور د پښتنو د شاهي کورنۍ هم نسل وو ـ احتمال لری چه د مغلو بادشاه به د غور دے پښتون سردار ته د افغانستان د دے حصے اختیار ورکړے وی ـ د دے کورنۍ حکومت په افغانستان کښې د ۱۲۴۵ء نه د ۱۳۸۳ء پورے قائم وو ـ د چنګیزخان د تباهۍ نه پس د دے کورنۍ بادشاهانو په ملک کښې یو با قاعده او منظم حکومت قائم کړو ـ او علم و ادب، تجارت او صنعت وحرفت ته توجه اوکړه ـ د دے سلسلے دویم باچا رکن الدین او دریم فخرالدین نومیدهٔ ـ تر دے وخته (۱۳۰۸ء) پورے دا باچایان د مغلو زیر اقتدار او د هغوی باجګزار وو ـ ولے د دے سلسلے څلورم بادشاه غیاث الدین کرت د مغلو د اقتدار نه آزادی حاصله کړه ـ او د دے نه پس د دے سلسلے نور باچایان لکه دویم شمس الدین، ملک حافظ او معزالدین حسن آزاد او خود مختاره وو ـ

معزالدین حسن (۱۳۳۱-۱۳۵۹ء) چه د دے سلسلے اووم باچا وو ـ د نوی برم او اقتدار خاوند وو ـ د دهٔ په زمانه کښې د فارس د مغلو طاقت مخ په زوال وو ـ د دغه وجه وه چه معزالدین د مرغاب پورې علاقه اونیوله ـ د دهٔ په زمانه کښې تجارت هم په ترقۍ وو ـ دا باچا د علم و فضل هم لوئ پالونکے او مرستیال وو ـ د (۲۹) کالو د حکومت نه پس په ۱۳۵۹ء کښې وفات شو ـ او د دهٔ په ځائے غیاث الدین پیر علی تخت نشین شو ـ

د غیاث الدین په زمانه کښې تیمور لنګ د خپلو فتوحاتو آغاز اوکړو ـ په دے سلسله کښې ئے خپل یو استاذئے هرات ته هم رااولیږلو ـ او مطالبه ئے اوکړه چه د هرات حکومت دِ په رضا صلاح د تیمور اقتدار ته تسلیم شی ـ لیکن غیاث الدین د تیمور د دے خواهش منلو ته تیار نۀ شو ـ او د دے نتیجه دا شوه چه تیمور په هرات حمله اوکړه ـ او ملک غیاث الدین د خپلو ځامنو سره د تیمور په لاس کښې بندیوان او د هغهٔ په حکم اووژلے شو ـ (۱۳۸۳ء) او دغه شان د کرت کورنۍ ختمه شوه ـ او په افغانستان کښې د تیمور اقتدار قائم شو ـ

# د تیمور اقتدار

تیمور چه په ګوډ تیمور هم مشهور دے ـ په ترکی قبائیلو د برلاس قبیلے د یو سردار ځوئے او په کال ۱۳۳۵-۳۶ء کښے په کیش نومے کلی چه د سمرقند جنوب ته واقع دے. زیږیدلے وو ـ په ترکئ ژبه کښے د تیمور معنیٰ "فولاد" ده ـ د وړوکوالی نه په سختیو او تریسکو عادت شوے وو ـ د غه وجه وه چه هیڅ ورته ګران نهٔ ښکاریدل ـ په یو جګړه کښے په ښپه خوږ شوے او د هغے نه لږ شان ګوډ شوے وو ـ د چغتائی مغلو نه ئے اقتدار ترلاسه کړو. او چه ځان ئے ښه مضبوط کړو ـ نو په مرکزی ایشیا کښے یو عظیم سلطنت تشکیل کړو ـ د دے سلطنت مرکز سمرقند وو ـ د دے نه پس ئے په لښکر کشیئو ګوتے پورے کړے.

تیمور د مورد طرف نه د چنګیز خان خپل او د هغهٔ په شان ډیر صاحب تنظیم، ضابط، زړور، او د غیر معمولی قوت ارادئ خاوند وو ـ په خونړئو کښے د چنګیز خان نه کم نهٔ وو ـ او په مکرو فریب او چالاکئ کښے د چنګیز خان نه هم دوه ګوتے د پاسه وو ـ د خوا وشا توے علاقے ئے او نیولے ـ او د ۸۳-۱۳۷۹ء په میاشتو کښے هرات سیستان او قندهار فتحه کړل ـ او بیا ئے هغه څه اوکړل ـ چه د دهٔ نه وړاندے چنګیز خان هم نهٔ وو کړی یعنی په پښتنو قبائیلو ئے په غرنیزو مینو کښے حملے شروع کړے ـ او د دوی د ا علاقے ئے اولوټلے او دوئ ئے خپل ځان ته ایل کړل ـ او کوم وخت چه هغهٔ په هندوستان حمله کوله ـ (۱۳۹۸ء) نو د هغهٔ هراول فوځونه په پښتنو قبائیلو مشتمل وو ـ د اپښتنانهٔ قبائیل د خپلو مشرانو ملک سربنی، ملک خضر سروانی، ملک بهاءالدین نیازی او ملک یوسف سروانی په سرکردګئ کښے د تیمور ملګری وو ـ

په دغه زمانه کښے په هندوستان کښے د تغلق خاندان حکومت وو ـ ولے د فیروز شاه نه پس په دے کورنئ کښے د زوال نښے نښانے ښکاره شوے وے. د تیمور د حملے په ورځو کښے د دهلی په تخت محمود تغلق حکمران وو ـ تیمور د خپل فوځ یو حصه د خپل نسی پیر محمد په ماتحتئ کښے سنده ته اولیږله ـ پیر محمد د "تلمبے"، ملتان، دیبالپور "بهټنیز"، قلاګانے فتحه کړے ـ او بیا د تیمور د راتلو پورے اتال شو ـ د فوځ بله حصه تیمور

په خپل کمان کښې وانخستهٔ - اوِ د غزنی او بنون په لار د « هنکوټ » نه راووت-په اباسین پورے وتو - او د ټهټهړے په مقام دخپل نمسی پیر محمد سره یوځائے شو - او بیا د دے ځائے نه د دهلی په لور اوکوچید لو -

محمود تغلق د تیمورځهٔ معمولی شان مقابله اوکړه - وِلے خو ذدځے او نهٔ کړو - اوګجرات ته اوتښتیده - تیمور په دهلی ورننوتو - په دهلی کښے د تیمور د سپاهیانو او دښار د خلقو په څه خبره تکرار او شو - په دے وجه تیمور د قتل عام حکم اوکړو - درے ورځے او درے شپے په ښار کښے قتل عام جاری وو - او د وینو رودونه بهیدل - بے حسابه خلق د تیمور د سپاهیانو په تورو قطرے قطرے شول - او د دهلی ښار تالا والا شو - آخر په ډیره مشکله دا قتل عام بند شو - تیمور په دهلی کښے دوه هفتے پاتے شو - او په دے ورځو کښے ئے ټول ښار جارو کړو - او بیا د وطن په لور روان شو - د هندوستان په مهم کښے تیمور پنځلس میاشتے تیرے کړے .

د تیمور د حملے په وخت کښے د ملتان او لاهور په علاقو کښے ډیر پښتانهٔ بالخصوص نیازی او لودی قبائیل آباد وو - دے خلقو د تیمور د نمسی سره شدید جنګونه کړی وو. لیکن د ملتان حاکم سید خضرخان د پیر محمد مرسته کړی ده - او د هغهٔ اطاعت ئے منلے وو - دغه وجه وه چه تیمور په خپلے واپسئ کښے سید خضرخان د خپل طرف نه د ملتان او لاهور حاکم مقرر کړو -

تیمور په کال ۱۴۰۵ء کښے چه دغه وخت هغهٔ د چین د فتوحاتو په تکل کښے روان شوے وو - د « اترار » ښار کښے وفات شو - دغه وخت د هغهٔ عمر اویا کاله وو - تیمور اګر چه مذهبًا مسلمان وو - لیکن د مذهب سره ئے څه خاص دلچسپی نهٔ لرله - ډیر بے رحم او سفاک وو - په هلاکت او تباهئ کښے د چنګیز خان نه څهٔ کم نهٔ وو - د هندوستان د حملے په وخت کښے چه دهلی ته نزدو شو نو یو لک قیدیان ئے چه دهٔ په مختلفو جنګونو کښے نیولی وو اووژل - ډیرے عبادت خائے ئے ورانے کړے - عالمان ئے اووژل - تیمور دا هیله لرله چه سمرقند چه دهٔ دارالخلافه وه آباد کړے - او د دے آرزو په تکمیل کښے ئے د هر ځائے صنعتګران ، معماران ، د موسیقئ ماهران او نور نور فنکاران په سمرقند کښے جمع کړی وو - تیمور د دنیا په لویو فاتحانو کښے حسابیږی - د هغهٔ سلطنت د دهلی نه تر دمشقه او د بحرآرال نه تر خلیج فارس پورے خور وو - د سیاست تنظیم او د جنګونو په فن کښے سارے نهٔ لرلو - دهٔ په مرګ دا وسیع سلطنت د دهٔ په اولاد کښے اووېشلے شو -

**شاهرخ مرزا:-** د تیمور د مرګ نه پس د هغه ځوئے شاه رخ مرزا د هغهٔ جانشین شو- د پلار په ژوند کښې دے د خراسان ګورنر وو- د هرات تهذیب و تمدن په دهٔ ډیر اثر کړے وو- دهٔ د خپل سلطنت مرکز هم هرات او ټاکلو- او په سمرقند کښې خپل ځوی الغ بیګ مرزا چه یو عالم فاضل او په علم هیئت کښې لوئے ماهر وو- حاکم مقرر کړو- شاهرخ طبعًا امن پسند او د جنګونو نه متنفر وو- د دهٔ په زمانه کښې په ملک کښې امن و امان وو- د خپلو ځینو مصاحبینو خصوصًا د خپلې بېګمې ګوهرشاد په تلقین او مشوره- شاهرخ ترځه حده د هغهٔ تباهیو تلافی اوکړه کوم چه د دهٔ د پلار په وخت کښې شوې وې- دا باچا یو عادل، نیکو کار او د علم و عرفان سره مینه لرونکے وو- علما فضلا پرګران وو- د دهٔ په زمانه کښې د صنعت، موسیقۍ، معمارۍ او نقاشۍ لوئے لوئے ماهران پیدا شول. شاهرخ په خپله هم په خپله زمانه کښې د موسیقۍ یو لوئے ماهر وو- دے باچا درےڅلویښت کاله حکومت اوکړو- او په ۸۵۰ھ کښې وفات شو-

د تیمور د کورنۍ وروستے مقتدر باچا سلطان حسین بایقراء دے- د دهٔ پلار غیاث الدین منصور نومیده- چه د بالقرا ځوئے د عمر شیخ نمسے او د تیمور کړوسے وو- سلطان حسین په هرات کښې زیږیدلے او د هغه الغ بیګ مرزا په تربیت کښې لوئے شوے وو- کوم چه د شاهرخ ځوئے او د علم هیئت یو لوئے ماهر وو- د دے بادشاه د خپل نومیالی وزیر علی شیر نوائی په تلقین د علم و عرفان په لاره کښې ډیر خدمتونه کړی دی- د دهٔ زمانه د علم و عرفان او صنعت و حرفت د ترقۍ زمانه وه- خطاطی، رسامی، نقاشی او شاعری او داسې نور فنون لطیفه په پرمخ تګ روان وو- د فارسۍ ژبې مشهور شاعر او صوفی مولانا عبدالرحمان نورالدین جامی په دغه زمانه کښې ژوندے وو- او د خپلې زمانې مشهور فنکار بهزاد هم دغه وخت ژوندے وو- بهزاد په هرات کښې په کال (۱۴۷۰) کښې زیږیدلے وو- او د سلطان حسین بایقراء په زمانه کښې ئے په هرات کښې د نقش و نګار او خطاطۍ یوه اکیډیمی قائمه کړی وه. چه په هغې کښې به د هغه زمانې لوئے لوئے فنکاران د خپل خپل فن په تکمیل کښې لګیا وو-

د سلطان بایقراء په زمانه کښې د تیمور په ټبر کښې مرزا الغ بیګ د غزنی او کابل په علاقه حکمران وو- دا میرزا الغ بیګ د عمرشیخ مرزا ورور او د بابر تره وو- سلطان حسین د (۳۵) کاله حکومت نه پس په کال ۹۱۱ھ کښې د بادغیس په مقام وفات او په هرات کښې ښخ شو- د دے نه پس د تیموریانو سلطنت د شیبانیانو د حملو په نتیجه کښې سقوط اوموندلو-

دکابل مرزا الغ بیگ هم په کال سنه ۱۵۰۲ء کښې مړشو - او ددهٔ په مرګ په دے علاقه کښې شروونه فسادونه پورته شول - او د سنه ۱۵۰۴ء پورے د تخت څو دعویداران پیدا شول - ولے هم په دغه کال بابر په کابل قبضه اوکړه - او دغه شان یواځے دا نه چه په افغانستان کښې د تیموری خاندان حکومت قائم پاتے شو - بلکه په هندوستان کښې هم قائم شو -

داخبره د فکر وړ ده چه د چنګیزخان د حملے (سنه ۱۲۲۱ء) نه واخلے د بابر د فتح کابل (سنه ۱۵۰۴ء) پورے زمانه بلکه د دے نه څه زمانه وروستو هم په افغانستان کښې د پښتنو تاریخ په تیرو کښې پټ دے - په دے اوږده زمانه کښې چه تقریبًا په درے سوه کاله مشتمله ده. د پښتنو قبائیلو د نومونو ، د دوی د ژوند زوال او ژبے په باب کښې هیڅ معلومات په لاس نهٔ راځی - او په حقیقت کښې د پښتنو د تاریخ دا زمانه د هندوستان سره تعلق لری. په دے اوږده زمانه کښې چه په افغانستان کښې د مغلو د حملو په وجه د طوائف الملوکئ او بلچاګردئ کیفیت قائم وو - په هند کښې پښتنو د ومره سیاسی اقتدار حاصل کړے وو - چه د هندوستان په تخت د دوئ د یونه زیاتو خاندانونو بااقتداره حکومتونه قائم کړی وو - او چه کوم وخت بابر کابل فتح کړو - دغه وخت هم په هند کښې د پښتنو یو مقتدر سلطنت قائم وو - چه آغاز ئے د بابر د پیدائش نه څه پنځوس کاله اګاهو شوے وو - او هم دغه سلطنت وروستو د بابر د لاسه سقوط اوموندهٔ - په دے وجه موږ ته د پښتنو د سیاسی ترقئ د تلاش او لټون د پاره یوځل بیا د افغانستان نه د هند په لورتوجه ګرزول ضروری دی - دلته به صرف دومره وینا کافی وی - چه په دے اوږده عرصه کښې دا افغانستان څه بیل تاریخ نشته - او نهٔ په دغه زمانه کښې دا وطن په دے نامه مشهور وو - البته دا درست ده - چه په دے زمانه کښې د موجوده افغانستان د یو نیم ښار مثلاً د هرات د ترقئ حالات معلوم دی - دا ښار نهٔ صرف د کرت کورنئ په زمانه کښې د دوئ د حکومت مرکز وو - بلکه د تیمور د اولاد په زمانه کښې هم د خراسان د ګدئ ځائے وو - او یواځے د لویو لویو مدرسو او شاهی عمارتونو او زیارتونو په وجه مشهور نهٔ وو - بلکه د دغه زمانے د عالمانو فاضلانو ، فلسفیانو او فنکارانو هم یو مرکز وو - ولے ترکومه چه د ملک د مجموعی حالاتو یا د پښتنو قبائیلو تعلق دے - د دے په حقله هیڅ معلومات په لاس نهٔ شی راتلے - البته د بابر د وخت نه (سنه ۱۵۰۴ء) پس د پښتنو مرتاریخ بیا ژوندے کیږی -

لکه چه وړاندے مو ویلی دی - د چنګیزخان نه پس د هغهٔ د اولاد په زمانه کښې د غوری پښتنو کرت کورنئ په هرات کښې د مغلو زیر اقتدار یو حکومت قائم کړے وو - چه وروستو

ځي دمغلو د اقتدار نه ځان آزاد کړے وو۔ لیکن د دے حکومت د اقتدار دائره محدوده وه او د ملک په مختلفو حصو کښے باچا ګردی وه ۔ او مغلو به په هرلوری تاختونه او یرغلونه کول۔ او ملک به ځي تالا کولو۔ په حقیقت کښے په افغانستان کښے دا زمانه د مغلو او پښتنو ترمینځه دیو اوږد او طویل آمیزش زمانه وه۔ د دے دواړو قامونو ترمینځه دا آویزش د بابر په وخت کښے هم جاری وو۔ او د دے نه پس هم دا تلسیے صدی (م) ترآغاز پورے په څه نه څه شکل کښے موجود وو۔ ولے د دے نه پس پښتنو په خپل ملک کښے د مغلو د سیاسی اقتدار نه ځان آزاد کړو۔ او د خپل حکومت په تشکیل کښے کامیاب شول۔

دا حقیقت چه پښتانهٔ قبائیل څه رنګ په موجوده زمانه کښے د افغانستان په مختلفو علاقو کښے آباد دی۔ دغه شان د چنګیزخان په زمانه کښے هم آباد وو۔ او د چنګیزخان د زمانے نه به وړاندے هم په دغه مزکه استوګن وو۔ د کرت کورنۍ په عهد حکومت کښے د پښتنو او مغلو ترمینځه دځنے مقامی جنګونو حال معلومیږی۔ په دے قسم جنګونو کښے د یو جنګ چه د «سورغر» د جنګ په نامه مشهور دے حال موږ ته د پټے خزانے په شهادت معلوم دے ۔ دا جنګ د غلجي پښتنو او مغلو ترمینځه شوی وو۔ نو ممکنه چه د ملک په یو حصه کښے د مغلو او غلجي پښتنو تر مینځه په دیارلسمه صدۍ کښے جنګونه کیدل۔ نو موږ دا قیاس کولے شو چه په دغه زمانه کښے به د افغانستان نور قبائیل لکه په مثال کښے ابدالی پښتانهٔ هم د دے وضعیت سره مخ وو۔ ولے د بده مرغه د نورو پښتنو په حقله هیڅ معلومات په لاس نهٔ راځي۔ د سورغر دا جنګ اګرچه په ظاهره کښے د معمولی نوعیت جنګ دے ۔ ولے زما په خیال کښے په یوڅو وجوهاتو ډیر اهمیت لری۔ د دے د اهمیت یو وجه دا ده چه د دے نه د غلجي قبائیلو د استوګنے علاقه معلومیږی۔ غلجي قبائیل چه نن ورځ په کومه علاقه کښے استوګن دی ۔ په دیارلسمه صدۍ کښے یعنی د چنګیزخان د اولاد په زمانه کښے هم تقریبًا په دے علاقو کښے میشته وو۔ او د دے نه په وړاندینۍ زمانه کښے هم دلے میشته وو۔ د دے جنګ د اهمیت دویم وجه دا ده چه د دے جنګ نه موږ ته د هندوستان د خلجیانو د اصل نسل او ژبے په حقله هم رهنمائی حاصلیدے شی۔ هندوستان خلجیان هم په دغه زمانه کښے یعنی د چنګیزخان د تهاجماتو په دوران کښے د افغانستان نه هندوستان ته تلے وو۔ د دے هندوستانی خلجیانو د اصل نسل او ژبے په حقله د عالمانو ترمینځه اختلاف دے ۔ ځنے دوی نسلًا ترک ګنړي ، او د ځینو په خیال کښے دوی د افغانستان د غلجي قبائیلو هم نسل ، ورونه تربوران او عزیزان دی۔ دا ظاهره ده چه د افغانستان غلجیان پښتانهٔ او دوی

ژبه پښتو وه - نو دا قیاس یقین ته ډیر نژدې معلومیږي چه د هندوستان دا خلجیان به هم هغه خلق وو کوم چه په افغانستان کښې د غلجیانو په نامه مشهور وو. او د دوی مورنۍ ژبه به پښتو وه - اګرچه د ترکانو سره د نژدې او زور تعلق په وجه به ئې ترکي ژبه هم خپله کړې وه.

د سور غر په جنګ کښې د غلجیانو مشر هوتک بابا وو - چه د بارو څو ئې د تولږ نسبې او د غلجي بابا کړوسې وو - او د پټې خزانې په شهادت په کال ۶۶۱ هـ کښې زیږیدلې وو - دغه وخت د کرت په کورنۍ کښې اول شمس الدین حکمران وو - چه د دې کورنۍ وړومبې باچا او د ۶۴۳ نه د ۶۷۷ هـ پورې ئې په هرات کښې حکومت کړې وو -

د پټې خزانې د روایت مطابق هوتک بابا چه لوئې شو نو په اتغر[۱] کښې د قام مشر شو په دغه زمانه کښې به مغلو دارغنداو په غاړه لوټ کاوو - اتغر، اولان[۲] او قلات به ئې تالا کول د مغلو دا تاختونه هوتک بابا برداشت نه کړې شول - نو خپل قبائل ئې راغونډ کړل - او په سور[۳] غر ئې د مغلو سره جنګ اوکړو - په جنګ کښې پښتانهٔ کامیاب او ډیر مغل اووژلې شول - دد ې جنګ نه علاوه د مغلو او پښتنو ترمینځه نور جنګونه هم د هوتک بابا په سرکردګۍ کښې شوي دي - دا جنګونه د هوتک بابا نه پس د هغهٔ ځوي ملک یار بابا ته په میراث کښې پاتې شول - او شاید چه د هغهٔ نه پس به هم کیدل - هوتک بابا په کال ۷۴۷ هـ کښې د نهه اویا کالو په عمر کښې وفات شو - د سور غر په جنګ کښې به هوتک بابا دا سندره وئیله او خپل شاه ځلمي به ئې جنګ ته پارول -

# دهوتک بابا سندره

په سور غر بل را ته نن اور دے ۔۔۔ وګړیه جوړ را ته پیغور دے

په کلي کور باندې مغل راغے ۔۔۔ هم په غزني هم په کابل راغے

غښتلیو ننګ کړئ دا مو وار دے ۔۔۔ مغل را غلې په تلوار دے

په پښتونخوا کښې ئې ناتار دے ۔۔۔ پر کلي کور باندې مغل راغے

---

[۱] اتغر - د قلات جنوب مشرق ته یو مقام دے چه د هوتکو او توخیا تو مسکن او حکومتي مرکز دے - [۲] اولان - د موجوده شاه جوی په قطب یو مقام وو چه د پخوانیو ابادیو نښې نښانې ئې تراوسه موجود دي - [۳] سور غر د اولان او شاه جوی ترمینځه د قطب په لور دیو غر نوم دے - [۴] د غښتلي جمع مراد ځوانمرد، مضبوط، دلاور -

آ د مرغ[1] غښتليو را شي — په ننګ د واړه پښتو نخوا شي

توري تيري غشي تر ملا شي — پر کلي کور باندې مغل راغئ

ځلمو په غشو کړئ وارونه — د تيرو تورو ګذارونه

ورو راندې کړئ خپل ټټرونه — پر کلي کور باندې مغل راغئ

زما د ځلمو وينې بهيږي — مزکه او غرونه پرې سره کيږي

ميرڅي[2] زغلي او ترهيږي — په کور باندې مغل راغئ

پښتنو هلئ په غزه جنګ دې — سور غر په وينو د دوی رنګ دې

مهال[3] د تورې دې د ننګ دې — پر کلي کور باندې مغل راغئ

ځلمو په ننګ ځانونه مړه کړئ — دښمن[4] په غشو مو پنيله[5] کړئ

د پښتون خوا مزکې ساته کړئ

پر کلي کور باندې مغل راغئ

---

[1] د قندهار جنوب مشرق ته د يو وسيع علاقې نوم دې. چه آخري پوله ئې د کوه سليمان او بلوچستان تر منځه رسيدلې ده. د ارغستان منطقه، د قلات جنوبي علاقه او د کوژک غر لمنې د کاکړو د علاقې يوه حصه په کښې هم شاملې دي.

[2] ميرڅي - ے رڅي - د ميرخ جمع په معنیٰ د دشمن اوس دا کلمه د استعمال نه وتلې ده. ميرڅي دشمنۍ په معنیٰ خوشحال خټک هم استعمال کړې ده. ے

چه د سترګو ئې تقویٰ سر ميرڅي ده — په ناحقه ے ېولي پارسائي ده

[3] مهال - وخت - موقع -

[4] دا لفظ د پخوانو شاعرانو په کلام کښې موندلې شي. په معنیٰ د دشمن لکه د ملک يار برتين په دې شعر کښې ے — تورې تيرې کړئ دښمن مو پرې کړئ -

يا د امير نصر لودی دا مصرعه ع ، زما د ښمنه هسې تورا کړے ! عبدالقادر خان خټک هم دا لفظ استعمال کړے دے . ے

خو عارف د چا په ښو شکر ګذار وی — نهٔ په بدو د ښمنه لري ګيله

د بنګښو پښتو په لهجه کښې نن ورځ هم استعماليږي -

[5] پنيل - پيرل - ( په مزي کښې لکه داميل ) -

# پښتانه په هند کښې

## دخلجيانو سياسي عروج

په هندوستان کښې د مسلمانانو د حکومت زمانه په دوو حصو کښې ويشلې شي اوله دوره د محمد غوري د وفات سنه ۱۲۰۶ء نه شروع کيږي. د غه وخت په هند کښې قطب الدين ايبک د يو نوي سلسلې (خاندان غلامان) بنياد کيښود. دا دوره په سنه ۱۵۲۶ء کښې ختمه شوه. په دغه کال بابر په هند حمله اوکړه. او د ابراهيم لودي نه ئې د هند سلطنت اوګټلو.

دويمه دوره د سنه ۱۵۲۶ء نه شروع شوې او په سنه ۱۸۵۷ء کښې ختمه شوې ده. د غه وخت انګريزانو په هند قبضه اوکړه. او مغل حکومت سقوط اوموند. د مسلمانانو د سلطنت اوله دوره د سلطنت افاغنه (پښتنو سلطنت) په نامه او دويمه دوره د سلطنت مغليه په نامه مشهوره ده. په اوله دوره کښې اګرچه د خلجي او لودي خاندانونو نه علاوه نور حکمران خاندانونه د نسل په لحاظ ترک يا مخلوط النسل ترک وو. ليکن د محمود غزنوي او محمد غوري پرله پسې حملو پښتانهٔ د هند سره ډير بلد کړي وو. د قطب الدين ايبک فياضۍ او قدردانۍ د پښتنو حوصلې نورې هم زياتې کړې. او دوئ ته د خپلو ارمانونو پوره کولو د پاره يو لوئې ميدان په لاس ورغلو چنانچه د خاندان غلامان اکثر فوځونه هم په پښتنو مشتمل وو. او د دې نه پس په دې اوږده دوره کښې د حکمران خاندان (رحوا که هغه پښتون وو او که ترک) فوځي طاقت په پښتنو منحصر وو. او د سلطنت د سرحداتو د حفاظت ذمه واري دوي ته ور په غاړه وه. دغه وجه وه چه د دې فوځي طاقت په مرسته وروستو د پښتنو د يو نه زياتو خاندانونو د دهلي په تخت قبضه اوکړه. او د يو مقتدر سلطنت په تشکيل کښې کامياب شول. په دې بنا د غ دوړ ته د پښتنو د سلطنت دور وئيل نهٔ غلط دي او نه نامناسبه

په هند کښې د قطب الدين ايبک له خوا د يو نوي سلطنت د تشکيل په وجه د افغانستان تعلق څه موده د پاره د هند نه اوشليدو. او د پښتنو د طاقت مرکز هند ته منتقل شو. اګرچه په حيثيت د بادشاه د قطب الدين ايبک زمانه ډيره لنډه وه ليکن په دې لږه

موده کښې هم د دهٔ د قدر دانئ په وجه د شماره پښتانهٔ (خلج و افغان) د سلطنت په فوځونو کښې شامل شول - او دوی د یو عظیم داوْ طلبه فوځي طاقت حیثیت حاصل کړو.

قطب الدین ایبک یو ډیر فیاض، قدردان او د لوئې زړهٔ خاوند وو - د دهٔ د عظمت یادګار د قطب مینار په شکل کښې د دهلی نه د اتو نهو میلو په فاصله تر اوسه موجود دے - د دے مینار د تعمیر آغاز قطب الدین ایبک کړے وو - او تکمیل ئې سلطان التمش اوکړو - چه د قطب الدین نه پس په خاندان غلامان کښې یو لوئې مقتدر سلطان وو - د قطب الدین خاندان په هند کښې د سنه ۱۲۰۶ء پورے حکمران وو - او د دے نه پس د اقتدار واګې د خلجي خاندان لاس ته ورغلې -

د غزنوی او غوری بادشاهانو فتوحات په ترکي غلامانو او پښتنو (خلج و افغان) فوځیانو موقوف وو - ولې د دے دواړو فرقو (ترکي غلامان او داوْ طلبه پښتانهٔ فوځیان) په جذباتو خواهشاتو، ذهنیت او د سلطنت په باب کښې د دوئ فرائضو کښې نمایان فرق وو - "ترک" به د بادشاه « زرپیرودی » غلامان وو - د دوئ تربیت او پرورش به د بادشاه په نګرانئ کښې کیدو - دوی به د بادشاه ذاتي محافظ فوځ ګڼلے شو - او دوی به هم خپل ځان صرف د بادشاه د وړاندے ذمه وار ګڼلو - د دوئ وفاداری او جانثاری به د بادشاه د ذات سره وابسته وه - دا ترکي غلامان به د باقاعده تنخواه حقدار هم نهٔ شو ګڼلے - اګرچه هر عقلمند بادشاه به دا ضروری ګڼله چه د هغهٔ ذاتي او حفاظتي فوځ دِ په هر لحاظ اسوده او مطمئن وِی - محمد غوری په خصوصیت سره د ترکي غلامانو د اخستلو او هغوی ته د تربیت ورکولو سره ډیر مینه لرله - د غه وجه وه چه د هغهٔ په پرورده غلامانو کښې د قطب الدین ایبک غوندے ځنې قابل افراد پیدا شول - چه د بادشاهئ تخت ته اورسیدل - او د محمد غوری پیش نظر مقصد ئې تر سره کړو.

ولے د ډیرو صفتونو باوجود په دے ترکي غلامانو کښې غټ نقص دا وو چه کوم وخت به د دوئ مالک (بادشاه) وفات شو نو د دوئ د وفادارئ مرکز به هم بےځایه شو - او د اقتدار د حصول په غرض به دوی په خپلو کښې اونښتل - او په دے کښې به دوئ ګرم هم نهٔ وو - ځکه چه د رواج مطابق به دوی ټول د بادشاه د غلامئ په لړ کښې د یو حیثیت خاوندان وو - او د بادشاه به وفادار او جانثار وو - لیکن د باچا په وفات کیدو به دوئ په خپلو کښې د یو کس اقتدار ته تر هغه وخته غاړه نهٔ کیښودله - ترڅو چه به په دوئ کښې څوک د غیر معمولي شخصیت سړے پیدا نهٔ شو - د غه وخت به دے

سرې د خپلو امتیازي خصوصیاتو په وجه په دوی اقتدار حاصل کړو. او ځان له یې د خپلو مرستیالو یوه ډله پیدا کړه. او د هغې په کومک به یې په خپلو نورو سیالانو اقتدار اومونډ. او خپل ځان به یې د اقتدار اعلیٰ مالک او ګرځولو. د غه وخت به د دې سرې هغه کسان چه د چا نه به یې خطره کیدله د خپلې لارې نه لرې کړل. د غه رنګ به د بادشاه په وفات او د نوي بادشاه په تخت نشین کیدو د قتل وخونریزۍ واقعات او سازشونه جاري وو. او په دې وجه به د دوی تنظیم او اتحاد کمزورې کیدو.

لیکن په خلاف د ترکي غلامانو، پښتنو (خلج وافغان) به د یو خاص سړي یا د سړو سره څه خاص ژور تعلقات او وفاداري نۀ لرله. یعنې د دوی د وفادارۍ مرکز به یو خاص ذات نۀ وو. بلکه دوی به د داوْطلبه او مهم پسنده فوځي عنصر په حیثیت د هر هغه چا په ماتحتۍ کښې جنګ کولو چا چه به دوی ته تنخواه ورکولې شوه. او یا به یې د لوټ تالان او غنیمت موقع ورله پیدا کولې شوې. سره د دې داخلق د خپلو قبائلي خصوصیاتو او روایاتو په وجه د ترکي غلامانو نه څه کم خطرناک هم نۀ وو او د تنخواه دارو فوځیانو په حیثیت به د زیات اهمیت خاوندان وو. او په دې وجه به د دوی د اعتماد او وفادارۍ د حصول ضرورت زیات ګڼلې شو. د دې خلقو وفاداري به د خپلې خپلې قبیلې د مشر سره وابسته وه. د غه وجه وه چه د یو بادشاه په مرګ به د دوی تنظیم د ترکي غلامانو په شان نه ابتر کیدو. بلکه د دوی دا تنظیم په دوٙر رسو او طاقتور بنیادونو قائم وو. او د دې جوګه وو چه د خپلو حریفانو (ترکي غلامانو) په مقابله کښې په خپل مینځ کښې ترمودو مودو اتحاد واتفاق برقرار او ساتي. ولې د دې باوجود که یو لور ته د ترکي غلامانو ډله یو چوڼ کړې او نسبتًا وړه ډله وه. او یو بل لور د خلجیانو او پښتنو شمیر د دوی په مقابله کښې ډیر زیات وو. بیا هم د ریاست د نقطه نګاه نه د دوی تنظیم ډیر باقاعده نۀ وو.

لکه چه مو وړاندې وئیلي دي د صفاریانو، غزنویانو او په دوی پسې بیا د غوریانو اکثر فوځونه په خلجیانو او پښتنو مشتمل وو. دا خلجیان څوک وو؟ او د پښتنو (افاغنه) سره په هره موقع په خپل بیل نوم یو ځائې ولې ذکر شوي دي؟ دا یو داسې سوال دې چه ډیر تفصیل غواړي. او ورستو به په خپله موقع بیان شي. په دې ځائې کښې دومره وئیل کافي دي. چه د هند په تاریخ کښې د خلجیانو د شهرت آغاز د محمد غوري د زمانې نه شوی دی — وروستو بیا په دې شهرت کښې ورځ په ورځ زیاتې راغلو. او دوی دومره اقتدار حاصل کړو. چه د هند په مختلفو علاقو کښې یې د درې څله په مختلفو وختونو کښې مقتدر سلطنتونه

تشکیل کړل ۔ او په دوی کښے داسے نومیالی بادشاهان هم پیدا شول چه په ټول هند کښے حکومت قائم کړو ۔ او د خپلو کارنامو له کبله ئے په تاریخ کښے ډیر لوړ مقام او موندلو

د محمد غوری په عهد کښے خلجیان د لوئے اهمیت خاوندان وو ۔ د خلجیانو د شهرت آغاز د بختیار خلجی د کارنامو نه کیږی ۔ دا سړے چه اختیار الدین نومیده ۔ په ذات خلجے وو ۔ او د محمد غوری له خوا په غزنی کښے د خلجیانو د بهرتئ افسر مقرر شوے وو ۔ "غزنے" د موجوده "غلجی" قبائیلو مرکز دے ۔ د بختیار خلجی دا عهده په دے خبره دلالت کوی چه د محمد غوری په نظر کښے د بختیار خلجی او خلجیانو اهمیت ډیر زیات وو ۔ بختیار خلجی څه موده په دغه عهده کار اوکړو ۔ لیکن په دے ورځو کښے به غزنی کښے په یو اعلیٰ عهده باندے د کار کولو په نسبت په هند کښے قسمت آزمائی کول غوره معلومیدل ۔ چنانچه بختیار هم د غه نوکری پریښوده ۔ هند ته راغے او د اوده په علاقه کښے د یو ورکوټی جاګیر په حاصلولو کښے کامیاب شو ۔ او په لږو ورځو کښے ئے د خپل ځان سره د خپلے قبیلے یوه لویه ډله جمع کړه ۔ په دے زمانه کښے پښتانه په هند کښے تر دے حده په خطرناکو ارادو آماده شوی وو ۔ چه بختیار خلجی د دے ورکوټی جمعیت په کومک د بهار په علاقه کښے تاخت و تاراج شروع کړو ۔ او په لږه موده کښے ئے د بهار ټوله علاقه اونیوله ۔ د دے نه پس ئے د شمالی بنګال په دارالخلافه صرف د اتلسو ملګرو سره حمله اوکړه ۔ او راجه ئے په تیښته مجبور کړو ۔ او په دے ټوله علاقه کښے په اول ځل د خلجیانو یو نوے سلطنت تشکیل کړو ۔ (سنه ۱۲۰۲ع)

د خلجیانو دا سلطنت چه بانی ئے بختیار خلجی وو ۔ د بنګال و بهار په علاقه کښے اولنے اسلامی سلطنت وو. دغه وخت قطب الدین ایبک د دهلی حکمران وو ۔ بختیار په رسمی طور د سلطنت دهلی د اطاعت وعده اوکړه او په خپل سلطنت کښے ئے ټولے اهمے عهدے د خپلے قبیلے خلقو ته ورکړے ۔ د دے سلطنت په قیام سره د بنګال او بهار په علاقو کښے په اول ځل خلجی او لودی پښتانه په ډیر شمیر کښے آباد شول ۔ دغه وجه وه چه بختیار نه درے سوه کاله پس شیرشاه هم د خپل اقتدار آغاز د بهار نه اوکړو ۔ او د بختیار خلجی د کارنامو یادونه ئے بیا تازه کړه ۔

بختیار خلجی صرف درے کاله حکمران پاتے شو ۔ او په سنه ۱۲۰۵ع کښے د یو خلجی امیر علی مردان خان د لاسه اووژلے شو ۔ علی مردان خان په حکومت قبضه اوکړه ۔ ولے علی مردان د خپلے غدارئ په وجه سرسبز نه شو ۔ او څه موده پس هغه د یو بل خلجی امیر (عوض خلجی) د لاسه اووژلے شو. عوض خلجی د غیاث الدین لقب اختیار کړو ۔ د طبقات ناصری مولف منهاج السراج په بنګال کښے د ده د نامے ډیر تعمیرات ذکر کړی دی ۔ غیاث الدین خلجی دولس کاله د بنګال حکمران وو ۔ په کال سنه ۱۲۲۶ع کښے د دهلی فوځونو په بنګال حمله اوکړه ۔ او د دے په نتیجه کښے په بنګال کښے د خلجیانو اولنی حکومت سقوط اوموند ۔ دغه وخت د دهلی په تخت سلطان شمس الدین التمش حکمران وو

# دخلجیانو دویم حکومت

لکه چه وړاندې ښودل شوي دي په هند کښې قطب الدین ایبک د یو نوې سلسلې باني ګرزیدلے وو۔ ددې سلسلې آخري مقتدر ټولواک بلبن نومیده۔ چه نسلاً ترک او د شمس الدین التمش غلام وو۔ ولې د خپلو فتوحاتو بهتر نظم و نسق او امن و امان په لړ کښې د خلجیانو او پښتنو ممنون وو. د بختیار خلجي په شان جلال الدین نومې یو خلجي د ده د فوځونو نائب سالار او د خلجیانو د برتړۍ افسر وو۔ چه د مغلو د مقابلې او مدافعت په غرض په د "سمانا" (پټیاله مشرقي پنجاب) په اهمې چاونړۍ کښې مقیم وو۔ بلبن په ۱۲۸۶ء کښې وفات شو۔ او د هغه په ځائې د هغه نمسې "کیقباد" بادشاه شو۔

کیقباد یو عیاش، بدچلن، شرابي او ناقابل بادشاه ثابت شو۔ او د کثرت مې نوشۍ په وجه په رنګا رنګ مرضونو کښې ګرفتار شو۔ دغه وخت د ترکي امیرانو په مقابله کښې خلجیان او افاغنه هم د لوړې اقتدار خاوندان وو۔ په دې وجه به ترکي امیرانو د دوئ سره رقابت لرلو۔ د کیقباد مرض خطرناک حالت ته اورسیدلو۔ هغه د کیلوګړهۍ په شاهي محل کښې د خپلو طبیبانو په نګرانۍ کښې پروت وو۔ دغه وخت کښې ترکي امیرانو د نوي بادشاه د انتخاب په باب کښې جرګې شروع کړې۔ ددې ترکي امیرانو دا خیال وو چه د دهلي په تخت ترکي النسل بادشاه پکار دې۔ دغه وخت دوئ ته د خلجیانو او پښتنو نه ویره پیدا شوې وه۔ دې امیرانو د هغه خلجي او پښتنو امیرانو یو فهرست تیار کړے وو۔ د چا نه چه د دوی خطره کیدله۔ په دې فهرست کښې د جلال الدین خلجي نوم د ټولو نه اول وو۔ د ترکي امیرانو د مخالفت وجه دا وه چه دوی دا خلق (خلجیان او افاغنه) خپل هم نسل یعنې ترک نۀ ګڼل۔ نو ځکه ددې فرقې د بادشاه اطاعت منلو ته تیار نۀ وو۔ په دې غرض دوی د کیقباد په ژوند کښې د هغۀ درې کلنې ماشوم ځوئې د محل نه راوښکلو او د "کیومرث" په نامه ئې هغه تخت نشین کړو۔

د بادشاه د انتخاب نه پس ترکي امیرانو د خپلې منصوبې مطابق خپل یو مشر سردار چه

"ایتمر کچن" نومیده - په جلال الدین خلجي او نورو سردارانو پسې په دې غرض اولیږلو چه په څه بهانه ئې کیلوکرهۍ ته راولی او بیائې غم غوڅ کړی. ولې خلجیان هم د حالاتو په نزاکت پوهه شوی وو. او د حالاتو مقابلې ته تیار وو.

کوم وخت چه ترکی سردار ایتمر کچن په بهارپور کښې د جلال الدین خلجي په مکان کښې د اس نه کوز شو. دغه وخت سمدستي د جلال الدین ځامنو هغه ټکړې ټکړې کړو. بیائې پنځه سوه سوارهٔ د خان سره واخستل او په کیلوکرهۍ کښې کیقباد په محل ورننوتل. هاشوم بادشاه کیومرث ئې ترلاسه کړو. او د دهلی د کوتوال ځامن ئې هم اونیول. او بیا بهارپور ته راغلل. دغه وخت ترکی امیرانو په خلجیانو پسې هېله اوکړه. لیکن په جنګ کښې اووژلې شول. د دهلی عام اولس چه په دې آګاه شو چه خلجیان کوندې په بادشاهی تخت قبضه کوی. نو هغوی هم د خلجیانو او پښتنو مقابلې ته اودریدل. او د دهلی د "بداونی" د دروازې سره د حملې په نیت جمع شول. ولې د کوتوال فخر الملک داخلق د سرکشۍ او جنګ نه په دې وجه منع کړل چه د هغه ځامن د خلجیانو په لاس کښې ګرفتار وو. او د هغهٔ سره دا ویره وه چه د دې بغاوت په وجه به زما ځامن اووژلې شي.

د دې نه پس جلال الدین د خپلو فوځونو سره کیلوکرهۍ ته راغې او د خپلې تخت نشینۍ اعلان ئې اوکړو. دغه وخت کښې کیقباد د ساعت ګرهۍ میلمه وو. ولې د جلال الدین په ایمایو ترکی امیر چه کیقباد د هغهٔ پلار وژلې وو. د کیقباد محل ته ورغې. او د ځنکدن په حالت کښې ئې کیقباد یوځولئ اووهلو. او ساه ئې ترینه اوویستله. بیائې په یو بوجۍ کښې واچولو. او د جمنا په سیند کښې ئې لاهو کړو. د کیقباد ماشوم ځوی "کیومرث" چه ترکی امیرانو د خپل غرض د پاره بادشاه کړې وو. هغه هم اووژلې شو. دغه شان د خاندان غلامانٌ اقتدار دور په سنه ۱۲۹۰ء کښې ختم شو. او د خلجی خاندان اقتدار قائم شو. چه د سنه ۱۳۲۰ء پورې قائم وو.

د تخت نشینۍ نه پس جلال د فیروزشاه لقب اختیار کړو. دغه وخت د هغهٔ عمر اویا کاله وو. په دې بنا د هغهٔ د پیدائش کال د سنه ۶۲۷ھ ۱۲۲۸ء خواوشا کښې تاکلې شو. دا هغه وخت وو چه د دهلی په تخت غلام بادشاه التتمش حکمران وو. په دې بنا موږ دا قیاس کولې شو چه د جلال الدین اسلاف به هغه خلجیان وو کوم چه د چنګیزخان او جلال الدین خوارزم شاه د جنګونو نه پس په بالائی سند کښې استوګن شوې وو. او بیائې التتمش فوځی ملازمت اختیار کړې وو. د دې خلجیانو مشر مالک خان نومیده. او التتمش هم د دې خلجیانو په مرسته

د اوچ او ملتان علاقې فتح کړې وې. او هم په دغه جنګونو کښې مالک خان وژلے شوے وو.

جلال الدين ديو کمزورى طبيعت خاوند او غير مستقل بادشاه وو. دے د هغه صفتونو نه خالى وو کوم چه د عهد وسطىٰ د بادشاهانو د پاره ضرورى ګڼلے شو. ولے د مغلو په باب کښې د ده رويه ډيره شديده او خوفناکه وه. د ده په وخت کښې مغلو څو ځله په هندوستان حملے اوکړے. ليکن جلال الدين د هغوى ډيرے شديدے مقابلے اوکړے. ذليلے شکستونه ئے ورکړل. او ګرفتار شوى مغلو ته ئے شديدے سزاګانے ورکړے. جلال الدين د خپل زوم او وراره علاوالدين سره ډيره مينه لرله. ولے علاوالدين يو بے رحم او جاه طلب انسان وو. او دغه خپل تره ئے په مکر و فريب اووژلو. او ځپله د هغه په ځائے بادشاه شو. (١٢٩٦ء).

**علاوالدين خلجى :-** د هندوستان په بادشاهانو کښې د لوئے شان وشوکت او اقتدار بادشاه وو. ده ټول هند کښې په څومره مرکزه خپل حکومت قائم کړے وو. په يو زمانه کښې هم بل بادشاه په دومره علاقه حکومت نۀ وو قائم کړے. علاوالدين يو ډير دلاور او د پخ ارادے خاوند وو. اګرچه په خپله خو امى وو ولے ډير هوښيار او معامله فهم وو. او د خلقو سره په ګذاره کولو ډير ښۀ پوهيدلو. او د هغوى د ارادو او خواهشاتو نبض شناس وو. د مذهب او رسم و رواج پرواه دار نۀ وو. د هغۀ زړۀ د ارزوګانو يو ټانګو وه. د خپل حکومت په ابتداء کښې هغۀ د سکندر په شان د ټولے دنيا د فتح کولو ناممکن خواهش لرلو. ولے د دهلى د کوتوال علاؤالملک په مشوره هغۀ دا ناممکن اراده بيخى پريښوده دغه شان د اکبر غوندے د هغۀ په زړه کښې هم د يو نوى مذهب د اجرا خامه سودا راولاړه شوه. ليکن سره د دے چه علاوالدين يو امى، ضدى او مطلق العنان بادشاه وو بيا هم په هغۀ کښې ديو معقولے خبرے د اوريدلو او منلو صلاحيت موجود وو. دغه وجه وه چه د هغۀ د زړۀ نه دا نامعقوله سودا هم علاؤ الملک کوتوال په مشوره لرے شوه. په دے لړ کښې چه علاؤالملک هغۀ ته کومه مشوره ورکړې وه، هغه داسے وه. علاوالملک هغۀ ته اووئيل :-

" د نوى مذهب اجراء د پيغمبرانو سره تعلق لرى او هغوى ته د خدائے د لورى مرسته اوکومک حاصل وى. د خدائى امداد نه بغير د پيغمبرى کار نشى چليدے. د سلطنت او نبوت په مينځ کښې هيڅ قسم څه تعلق نشته. هميشه حکومت د بادشاهانو کار دے او نبوت د پيغمبرانو په دنيا کښې ډير لوئے لوئے بادشاهان او فاتحان تير شوى دى. ولے يو کس هم د نبوت دعوىٰ

نۀ ده کړی - او نه ئے دیو نوی مذهب جاری کولو خیال پیدا شوے دے- د سلطنت شان و شوکت او فوځی طاقت او د مال و دولت کثرت دیو مذهب د اجراء د پاره مؤثر اسباب نۀ دی - داسے ناممکن خیال د زړۀ نه ویستل پکار دی - اوکه داسے اونکړے شو نو مسلمانان به د دۀ نه بغاوت اوکړی - او د مسلمانانو هغه تورے چه نن ستا د دشمنانو په وینو سرے دی هغه به بیا ستا او ستا د خاندان برخلاف د تیکو نه را بهر شی- آیا تۀ د چنګیز خان مغل نه لوئے فاتح ئے؟ چه هغۀ په لکونو مسلمانان اووژل ولے یو مسلمان ئے هم مغلی مذهب ته مائل نۀ کړے شو- بلکه مغل اسلام ته راواوړیدل - هیڅ یو مذهب د تورے په زور نۀ شی خوریدے- دا خبره دِ حضور یاده ساتی چه مذهب د نبوت سره تعلق لری او نبوت اوس ختم شوے دے - په دے خبره به په مسلمانانو کښے ډیر سخت اختلاف پیدا شی او خونریزی به اوشی- د دنیا مسلمانان به ستا برخلاف شی- او سلطنت ته به په دے خبره ډیر زیان اورسی - ستا امیران ستا د ویرے نه رښتیا نۀ شی وئیلے او ستا د غلطے رائے تائید کوی- ولے دا خبره ستا خیرخواهی نه بلکه عین دشمنی ده"

د کوتوال دے سپینو خبرو هغه په یو اوږد فکر کښے اوغورزولو- او هغه یو ساعت سر په زنګون فکر کښے ډوب ناست وو- او آخر ئے اووئیل " ستا په مور پلار دِ آفرین وی چه ما ته دِ داسے سپینے او په ډانګ پیټلی خبرے اوکړے - او زما د دوستی حق دِ اداکړو - او د نمک حلالو دوستانو په شان دِ زما غلطی ما ته ښکاره کړه- زۀ دا وعده کوم چه آئنده به داسے بے هوده سودا په خپل زړۀ کښے نۀ پالم - او د نوی مذهب د اجرا غلط خیال به د زړۀ نه بیخی لرے کړم"

د تخت نشینئ نه پس د علاؤالدین په مخکښے ډیر مشکلات وو- دا مشکلات اکثر دسیاسی نوعیت وو- په دے زمانه کښے د دهلی سلطنت په کورنو او بهرنو بے شیره مشکلاتو کښے ګیر وو- بهرنئ خطره د قطب قبلے د لوری نه د مغلو وه- مغلو په خپلو پنځو حملو کښے چه د سنه ۱۲۹۶ء او سنه ۱۳۰۸ء تر مینځ مینځ ئے کړی وے - تر دهلی پورے را رسیدلی وو - او د دے حملو په وجه د سلطنت رعب او دبدبے ته لویه صدمه رسیدلی وه- او د خونړ خبره لا دا وه چه د امیرانو طاقت دومره زیات شوے وو چه هر وخت به ئے د سلطنت نه د باغی کیدلو دیکے هم ورکولے- په دوی باندے صرف د بادشاه د ذات څه معمولی اثر وو- دا اولس خلق هم ډیرے سره شوی وو- د هندیانو طاقت اګرچه کمزورے شوے وو- لیکن ورک نۀ وو- او چه موقع به ئے موندله نو سر به ئے اوچتولو- ولے د دے ټولو مشکلاتو مقابله هغۀ په

خپل قوت ارادی او زړورتیا داسې اوکړه چه په لږو ورځو کښې هغهٔ د خپلې لارې ټول خرخښه لرې کړل - او د هغهٔ سلطنت په ټول هندوستان قائم وو - او دا مبالغه نهٔ ده چه نهٔ خو د هغهٔ نه وړاندې او نه بیا د هغهٔ نه وروستو بل کوم بادشاه په دومره لوئې او وسیع سلطنت حکومت کړې دې -

د سلطنت د استحکام په غرض هغهٔ په خپل سلطنت کښې څنې اصلاحات اوکړل - د هغهٔ دا اصلاحات د وخت ضرورت او د هغه زمانې د مزاج سره عین مطابق وو - دغه زمانه د فوځي استبداد زمانه وه او د یو مضبوط فوځ نه بغیر کامیابي ګرانه وه - هغهٔ فوځونه زیات کړل - او د تجربه کارو افسرانو په لاس کښې ئې ورکړل - هغهٔ د سپاهي د کال تنخواه (۲۳۴) تنکې مقرر کړه - او په دې غرض چه د څیزونو د ګرانوالی په وجه ملازمینو ته په امروزه ژوند کښې تکلیف او د ملازمانو د تنخواه د زیاتولولو په وجه په ملک کښې د افراطِ زر خطره پیدا نهٔ شي - هغه د ضرورت د هر یو څیز (د اعلیٰ نه ترادنیٰ پورې) نرخ مقرر کړو - په دې دستور څیزونه ارزان شول - او په معمولی آمدن کښې به هم ښهٔ ګذاره کیدله - د بازار د نګرانئ د پاره هغه دوه افسران مقرر کړی وو - چه یو ته به ئې دیوان ریاست او بل ته به ئې شحنهٔ منډی وئیل دوئ به د څیزونو د نرخونو نګرانی کوله - د قانون د خلاف ورزئ په صورت کښې به سختې سزاګانې ورکولې شوې - په دې طریقه علاوالدین یو عظیم فوځ په لږ خرڅ مرتب کړو - او د دې فوځ په کومک ئې خپلې آرزوګانې پوره کړې.

هغهٔ د بغاوتونو خطراتو کمولو ته هم توجه اوکړه - د امیرانو طاقت ئې کم کړو - هغوی ئې خپل مینځ کښې د رفت آمد او تعلقاتو ساتلو نه منع کړل - عام خلق ئې د عیش پرستئ او د تکلفاتو د ژوند نه قانوناً منع کړل - د مغلو سره ئې د بې رحمئ سلوک اوکړو - او د دې نتیجه دا شوه چه د کال ۱۳۱۳ء پورې هغه په خپلو ارادو کښې کامیاب شو - او د خپل عروج انتها ته اورسیدلو - د مغلو خطره بیخي لرې شوې وه - د امیرانو طاقت ختم شوې وو - هندو رعیت اطاعت اختیار کړې وو - او د هغهٔ د سلطنت پولې د هند آخری سر ته رسیدلې وې - د دې نه به زیات یو بادشاه نور څه کړې وې - د علاوالدین دا فتوحات او د هغهٔ عظمت د هغهٔ په جدت پسندئ مبني وو - هغه به هندوستان کښې وړومبې باچا وو - چه مذهب ئې د سیاست تابع نهٔ ګڼلو - هغهٔ به د عالمانو د مشورو پروا نهٔ ساتله - او دا به ئې وئیل چه زهٔ په جائز ناجائز نهٔ پوهیږم - زهٔ خو به هغه څه کوم چه د انصاف او ملکی بهترئ تقاضا وی - ولې د علاوالدین دا عظمت دمازیګر زیړې

نمر ثابت شو۔ دکوم نظام حکومت بنیاد چه هغهٔ ایښے وو۔ هغه قابل عمل نهٔ وو۔ د هغهٔ مالی اصلاحات هم په سمو بنیادونو قائم نهٔ وو۔ د سلطنت ټول کاروبار بس د یو سلطان د خپل ذات سره وابسته وو۔ او چه د هغهٔ سترګے پټے شوے نو د دے نظام ټوله بوده تنسته ورانه ماشوه شوه۔ د دے نظام رد عمل د هغهٔ په ژوند کښے شروع شوے وو۔ امیران هندو راجګان، بلکه عام مسلمانان د هغهٔ د سخت سلوک نه تر پوزے راغلی وو۔ ټول اختیارات په یو ذات کښے جمع کول، بے ځایه سختی او جاسوسی داسے خبرے وے چه د ملک نه ئے قید خانه جوړه کړی وه۔ په دے خبرو د بادشاه قوت ډیر کم شو۔ په آخری ورځو کښے هغهٔ دا غلطی هم اوکړه۔ چه د حکومت په اهمو عهدو باندے ئے رذیل او کم اصل خلق مقرر کړل۔ دے کم اصلو او رذیلو عهده دارانو د هغهٔ په خاندان کښے کورنی جنګونه او مخالفتونه پیدا کړل۔ د دے سازشونو مرکز ملک کافور[1] وو۔ چه په سلطان علاؤالدین حاوی وو۔ ملک کافور بادشاه ته د دوستئ او اعتماد په پرده کښے یو داسے زهر ورکړی وو چه د هغې نتیجه په قلاره په یو خوفناک مرض کښے ظاهره شوه۔ او هغه په کال ۱۳۱۶ء کښے وفات شو۔ د علاؤالدین په ځائے د هغهٔ نابالغه ځوئے د هغهٔ جانشین کړے شو۔ او ملک کافور خپل ځان د هغهٔ سرپرست او ټاکلو۔

د علاؤالدین نه پس په خلجی خاندان کښے داسے څوک نهٔ وو چه د علاؤالدین ځائے ئے نیولے وے۔ د دے نتیجه دا شوه چه په دے وسیع اسلامی سلطنت کښے ناځاپی د فتنو او سازشونو بازار تود شو۔ د امیرانو ترمینځه پرے جنبے او ډلے ټپلے جوړے شوے په دے وخت کښے کافور د خپل عروج انتها ته رسیدلے وو۔ هغهٔ د خپلے لارے هر ازغے لرے کړو۔ د شاهی کورنئ ټول افراد ئے یا ړاندهٔ کړل او یا ئے اووژل۔ صرف د علاؤالدین یو ځوئے مبارک خان چه وروستو د قطب الدین مبارک شاه په نامه تخت نشین شو۔ ژوندے پاتے شوے وو۔ د کافور طرز عمل د برداشت نه بهر شو۔ په امیرانو کښے بے اطمینانی خوره شوه۔ اه یو څو امیرانو په خپلو کښے صلاح اوکړه او کافور ئے اووژلو۔ (سن ۱۳۱۶ء)

د ملک کافور د مرګ نه پس د علاؤالدین ځوئے مبارک خان د قطب الدین مبارک شاه په نامه تخت نشین شو۔ او په ابتدا کښے ئے په ډیر قابلیت د سلطنت کاروبار شروع کړو۔ نوی بادشاه ټول سیاسی قیدیان پرے بنودل۔ ضبط شوی جائدادونه ئے خپلو مالکانو

[1] ملک کافور یو هندو بچه وو چه ډیر سنکلے او د ګجرات په جنګ کښے نیولے شوے وو۔

ته بیرته ورکړل. د علاوالدین د زمانې تجارتي قوانین ئې منسوخ کړل او د دې په وجه ملک کښې د سکون و اطمینان فضا قائمه شوه. لیکن دا سکون د مبارک شاه او ملک دواړو د پاره مبارک ثابت نهٔ شو. مبارک شاه په عیش و عشرت او نفس پرستۍ کښې مبتلا شو او په عیاشۍ کښې داسې ډوب شو چه کله کله به د شرابو په نشه کښې مدهوش د ښځو په جامه کښې دربار ته راغلو. د ښځو په شان کالي به ئې اچولي وو. بازاري فاحشې به په جار په شاهي محل او دربار کښې ګرزیدلې. او د لویو لویو امیرانو بې عزتي به ئې کوله. او دا ټول کرتوتونه به د یوهٔ نومسلم هندو بچه ، په اشاره کیدل. دا نومسلم په اصل کښې د ګجرات په قام پروار هندو او په رنګ جثه کښې حد په هورته ښکلی وو. او څه رنګ چه د مبارک پلار (علاوالدین) په آخري ورځو کښې د ملک کافور (خواجه سرا) په لاس کښې ګوډاګې وو. دغه شان اوس مبارک شاه د «حسن پروار» (نومسلم هندو بچه) په لاس کښې لوبیدهٔ. او د دې وجه د حسن ښکلا او د مبارک نفس پرستي وه. حسن پروار د کافور په شان په زړهٔ کښې درغله وو. مبارک شاه دهٔ له د «خسرو خان» خطاب ورکړے وو. او ټول اختیارات ئې ورکړي وو. دغه وجه وه چه حسن د خپل قام ډیر خلق په فوځ کښې ننویستل. او د ذمه وارۍ اکثرے عهدے ئې خپلو خلقوته ورکړے. او په دې طریقه د حکومت په حاصلولو کښې لګیا شو. د خسرو خان د دې منصوبو په وجه د خلجي خاندان خواخوږي امیران په ډیر تردد کښې وو. او مبارک شاه ئې د خسرو د ارادو نه اګاه کړے وو. ولې د خسرو خان حسن و نزاکت او د مبارک شاه شهوت پرستۍ د دغهٔ د احتیاط سترګې ړندې کړې وې. او د نیک خواهانو د انتباه او نصیحت هیڅ اثر ئې نهٔ قبلولو. آخر په سنه ۱۳۲۰ء کښې مبارک شاه د خسرو خان د لاسه قتل شو او د دغهٔ په ځائې خسرو په خپله د نصیرالدین په نامه تخت نشین شو. خسرو د علاوالدین د کورنۍ یو فرد هم ژوندے پرې نښود. شاهي بیګمات ئې په خپلو رونړو ترېورانو اوویشلې. د مبارک شاه ښځه ئې په خپله په نکاح کړه. او لوئې لوئې امیران ئې په محل هزار ستون کښې قید کړل.

د خسرو خان د حکومت لنډ دوره د ظلم وحشت یو خوفناکه دوره وه. د دغهٔ دا اراده وه چه په هندوستان کښې د هندوانو حکومت بیا قائم کړي. دغهٔ په ښکاره د اسلام سپکاوے شروع کړو. په جماتونو کښې ئې بتان کېښودل. هندوان به د قرآن شریف د پاسه کښېناستل. او په هره طریقه به ئې د اسلام په سپکاوي او مسلمانانو په د ل آزارۍ کښې څه کمے نهٔ کولو. دا ظاهره ده چه داسې حکومت ډیرے ورځې نهٔ شي چلیدے

ولې دې کښې شک نشته چه که څه هم خسرو خان په خپله منصوبه کښې کامیاب شوې وه نو د "بهارت ماتا" په هندوانو کښې به ئې د یو دیوتا درجه موندلې وه. خسرو خان هم هغه کار ونه کړې وو. کوم چه په وروستۍ زمانه کښې "سیوا جي" کړې دې. او د هغې کارونو په وجه په هندوانو کښې یو قامي هیرو ګڼلې شي. دا درست ده چه په خسرو خان کښې ډیر ذلیل عادتونه وو. هغه په ډیرې اخلاقي پستۍ او ذلیله طریقه د مبارک په ژوند قبضه کړې وه. او بیا ئې په ډیرې بې شرمۍ او نمک حرامۍ تخت حاصل کړے وو. ولې د هندو سلطنت د دوباره ژوندی کولو په لړ کښې چه هغه کومه منصوبه تیاره کړې وه او کوم کوششونه چه په دې لړ کښې هغه کړې وو. د هندوانو د نقطه نظر نه هغه د ستائنې وړ وو. هغه ته د مبارک شاه د نالائقۍ او د هغه د نفس پرستۍ او عیاشۍ نه د هندو سلطنت د دوباره قیام تصور پیدا شو. او د خپل عزت نفس په قیمت ئې خپل ذاتي اثر و رسوخ دومره زیات کړو چه د مسلمانانو په حکومت کښې او د هغوی په فوځ کښې ئې دومره هندو عنصر ورننه کړو. چه د هغې په مرسته ئې د سلو کالو یو اسلامي حکومت ته د دیکې ورکولو اراده لرله. د دې نه که یو طرف ته د هندوانو جبلي هوښیارتیا او د دوی د موقع شناسۍ د قابلیت اظهار کیږي نو په بل لور تر نه دا هم معلومیږي چه دوی په هیڅ وخت کښې دا خبره نه هیروی چه هندوستان د هندوانو دے.

د خسرو خان ناکړدې د زغم نه اوو تلې. اخر غازي ملک نومې یو امیر چه په دیپال پور کښې د فوځونو کماندار وو. د خسرو خان مقابلې ته رارون شو. خسرو خان هم د مقابلې په نیت د دهلي نه راووتلو. خپلو فوځونو ته ئې د دوو کالو پیشګي تنخواګانې ورکړې. ولې په دې خبره هم د هغه د فوځونو حوصلې زیاتې نه شوې. جنګ اوشو. د خسرو خان فوځونه اوتښتیدل. خسرو په خپله هم اوتښتیده. او په یو مقبره کښې پټ شو. لیکن په دریمه ورځ اونیولې شو. او په هغه ځائې کښې اووژلې شو کوم ځائې چه د خسرو خان د لاسه مبارک شاه وژلې شوې وو. (۱۳۲۰ع). د خسرو د حکومت زمانه څلور میاشتې وه. په دې توګه د خلجي خاندان دا دویم حکومت هم هغه شان ختم شو څه رنګ چه د دې نه دیرش کاله اګاهو د خاندان غلامان حکومت ختم شوې وو.

د خسرو خان د نمک حرامۍ په وجه چه اسلامي حکومت ته کومه صدمه رسیدلې وه په دغه وخت کښې "غازي ملک" یو داسې سړې وو چه د هغې تلافي ئې کولې شوه. له دې کبله د خسرو خان د قتل نه پس د ټولو امیرانو په خواست غازي ملک د غیاث الدین تغلق

په نامه د هند باچا شو. او د هغه نه شان د هند سلطنت د خلجي خاندان نه تغلق خاندان ته منتقل شو.

د تغلق خاندان د اصل نسل په باب کښې د مؤرخينو اختلاف دے. عموماً مؤرخين دے عقيدے ته مائل دی چه د هندوستان تغلق د سلطان بلبن د يو ترک غلام اولاد دے. چه په هغهٔ د پنجاب د جاټ قام يوه ښځه وادهٔ شوی وه. په دے بنا تغلق خاندان د نسل له مخه پښتون نهٔ دے. اګرچه څۀ پښتانهٔ شجره نويس دا سے هم شته چه دوی د "کاکړ" "خوږے" "تغرق" او تغلق يو شخصيت ګڼلے دے. او په دے وجه ئے تغلق خاندان هم په پښتنو کښے حساب کړے دے[1]. ولے زما په خيال کښې دا نظريه کمزوری ښکاری. به هر حال د هندوستان د تغلقانو په حقله دومره معلومه ده چه د غلام خاندان په وخت کښے دوی په هند کښے ميشته وو. او د جلال الدين خلجي په وخت کښے غازی ملک د هغهٔ د لوری نه د مغربي سرحدی قلاګانو محافظ وو. غياث الدين تغلق په کال ۱۳۲۵ء کښے د "افغان پوره" په مقام د يوچوبي محل د راپريوتو په وجه وفات شو او د هغهٔ نه پس د هغهٔ ځوئے جونا خان د محمد تغلق په نامه د هند باچا شو.

دا باچا (محمد تغلق) د عهد وسطیٰ او نننۍ زمانے مؤرخينو ډير بد نام کړے دے. او د زوغ ليونی په نامه ئے ياد کړے دے. ولے دا لفظ د هغهٔ د پاره استعمالول د هغهٔ سره بے انصافی ده. حقيقت دا دے چه د علم و فضل په لحاظ محمد تغلق د خپلے زمانے په ټولو بادشاهانو کښے ممتاز وو. د هغهٔ اکثرے منصوبے او تجاويز هم قابل عمل وو. ولے کله به هغه د قدرتي حوادثو او کله به د اتفاقي اسبابو په بنا کامياب نهٔ شو. ولے د هغهٔ په کارونو کښے د اخلاص او جوش جذبه شامله وه. خو دا هم حقيقت دے چه د اخلاص او نيک نيتۍ باوجود هغه د خپل رعيت د ښيګړے د پاره څه مفيد کارونه او نهٔ کړے شول. او په دے وجه هغه يو بد قسمته باچا ثابت شو.

---

[1] د پښتنو يو مشهور ليکوال ښاغلے مير افضل خان جدون (مرحوم) د دے خيال اظهار کوی. چه تغلق قيسي پټهانان (پښتانهٔ) دی. او دا بيخي غلطه ده چه څوک دوی ترک ګڼي. دا خلق (تغلق) د کاکوړ (کاکړ) قبيلے سره تعلق لری. د دوئ شجره دا سے وه. تغلق بن الياس بن ابوبکر بن جدعام بن کاک. چه د هغهٔ اولاد ته کاکړ وئيلے شي. د خلجيانو د زوال په ورځو کښے ملتان د هندی پښتنو يو لوئے مرکز وو. او ملک غازی د دے ښار نه روان شو. او د دهلی په تخت ئے قبضه اوکړه. (اتحاد افغان جنوری ۱۹۸۷ء)

د محمد تغلق په ذکر کښې دیو سیاح ابن بطوطه یادول هم د دلچسپۍ نه خالی نهٔ دی. ابنِ بطوطه د مراکش په طنجه نومے ښار کښې په کال ۱۳۰۴ء کښې پیدا شوے وو. د دهٔ پوره نوم عبدالله محمد وو. د سیل و سفر مینه ئے په طبیعت کښې پرته وه. چنانچه دیو شپیتهٔ کاله په عمر کښې ئے سفر شروع کړو. او د افریقه، ایشیا د ملکونو د سیل نه پس د هندوستان په لور رَاروان شو. او په کال ۱۳۳۳ء کښې د غزنی، کرمے او بنگښ په لار په اباسینډ راپورے وتو او دهلی ته راغے. د دے سفر په دوران کښې دے وائی چه د غزنی او کرمے په مینځ کښې په یو تنګۍ کښې هغه او د هغهٔ ملګری د پښتنو شوکمارو دلاسه ډیر تزنیدلی وو. دا سیاح د غزنی په حقله داسے وائی چه د فاتح محمود دا ښار "غزنی" په دغه دوران کښې په کنډ راتو مشتمل وو. دا اول موقع ده چه په دے اوږده دوره کښې موږ په اتفاقی طور د دے مورخ د قلم نه پښتنو مختصر ذکر واوریدلو. ولے صرف د نوم او د غزنیزو پښتنو د شوکے د دے خصوصیت نه بغیر د دوی نور څه حالات بیخی په تیرو کښې دی۔

هم په دے دول د دے خاندان د یو بل بادشاه (فیروز شاه تغلق) په زمانه کښې هم موږ د مؤرخ فرشته نه د پښتنو په باب کښې داسے اورو چه فیروز شاه تغلق به پښتنو ته په درنه سترګه کتل او په دوئ به ئے اعتبار کولو. کوم کسان چه محمد تغلق په وخت کښې د معمولی درجے افسران وو. د هغوی درجے ئے زیاتے کړے وے. او د سرحداتو د حفاظت ذمه واری ئے دوئ سپارلی وه[1]. د فرشتے د دے بیان تائید د پښتنو خپل مؤرخین هم کوی. د فرشتے د دے بیان نه دا قیاس کیدے شی چه د فیروز شاه تغلق په زمانه کښې به د پښتنو ټګ د هغهٔ په لور نور هم زیات شوے وی.

فیروز شاه تغلق په ۱۳۸۸ء کښې وفات شو. او د دهٔ په مرګ د سلطنت بوره نښته نوره هم ورانه شوه. اګر چه د هندوستان حکومت په دے خاندان کښې شپږ ویشت کاله نور هم جاری وو. او په دے عرصه کښې د دے خاندان شپږ کسه نور هم تخت نشین شول. ولے په دوئ کښې یو هم د دے قابل نهٔ وو. چه سلطنت د تباهۍ نه بچ کړی. په ۱۳۹۸ء کښې تیمور په هند حمله اوکړه. او د دے په نتیجه کښې په هند کښې د طوائف الملوکۍ حالت شروع شو. د مرکز نه لرے لرے صوبے خود مختاره شوے. په دے

---

[1] فرشته جلد اول مقاله دوم سلطان فیروز شاه تغلق ص۱۵۱

صوبو کښې یوه صوبه د مالوې هم وه چه په دغه وخت کښې دلے بیا پښتنو یو آزاد او خود مختاره حکومت قائم کړو۔

د مالوې ښکلې علاقه په اول ځل د سلطان التمش په زمانه کښې فتحه شوې وه۔ او د سنه ۱۴۰۱ء پورې د دهلي په سلطنت کښې شامله وه۔ په دغه کال دلاور خان نومې یو غوري پښتون د دې صوبې امیر مقرر شو۔ ولې دۀ سږی د تلو سره د خپلې خود مختارۍ اعلان اوکړو۔ او د غوري خاندان د یو نوي سلسلې باني شو۔ دلاور خان غوري په سنه ۱۴۰۵ء کښې وفات شو۔ او د هغۀ په ځائے د هغۀ ځوئے سلطان هرشنګ د مالوې حکمران شو۔ سلطان هرشنګ د خپل خاندان یو ډیر قابل او نومیالے بادشاه وو۔ د دۀ صدر مقام د ماني و ښار وو۔ چه کنډ والے ئې تر اوسه موجود دی۔ د سلطان هرشنګ د ژوند ډیره حصه د ګجرات د بادشاهانو سره په جنګونو کښې تیره شوه۔ نومورے په سنه ۱۴۳۵ء کښې وفات شو۔ او د دۀ په مرګ په مالوه کښې انقلاب اوشو۔ او د سختې خونریزۍ نه پس د هغه سپه سالار محمود خلجي د مالوې حکمران شو او د خلجي خاندان د سلطنت باني شو۔

محمود خلجي د مالوې په بادشاهانو کښې د ډیر شان و شوکت خاوند وو۔ او د سنه ۱۴۳۵ء نه تر سنه ۱۴۶۹ء پورې حکمران وو۔ د وسط ایشیا ، سلطان ابو سعید مرزا ، د دۀ دربار ته یو سفارت هم لیږلے وو۔ او د خلیفة المسلمین د لورې نه ورله خلعت بخښلے شوے وو۔ د دې نه د دۀ د شهرت او اقتدار اندازه لګیدلے شي۔ د محمود خلجي د وفات نه پس د هغۀ ځوئے د سلطان غیاث الدین په نامه حکمران شو۔ نومړي د خپل سلطنت ټول معاملات خپل ځوی ناصر الدین ته حواله کړل۔ او په خپله په عیش وعشرت کښې مصروف شو۔ ویلے شي چه د دۀ په حرم سرا کښې پنځلس زره ښکلې ښځې وینزې وې۔ او ټول کاروبار به هم د دې وینزو سره متعلق وو۔ په دې دستور غیاث الدین اتلس کاله په عیش وعشرت کښې تیر کړل۔ او په کال سنه ۱۵۰۰ء کښې وفات شو۔

د غیاث الدین نه پس د هغۀ ځوئے ناصر الدین حکمران شو۔ ولے دا یو ظالم، نفس پرست او عیاش بادشاه ثابت شو۔ دولس کاله حکمران وو۔ او په کال سنه ۱۵۱۲ء کښې وفات شو۔ د دۀ په ځائے ،، محمود ثاني ،، حکمران شو۔ دې بادشاه د چندیري راجه میدني په خپل وزارت مقرر کړو۔ او په دې وجه د دۀ په سلطنت کښې د هندوانو

اثر ورسوخ زیات شو. په دے ورځو کښے په چتوړ کښے "رانا سانګا" حکمران وو. په ۱۵۱۹ء کښے د محمود او رانا سانګا ترمینځه یو جنګ اوشو. چه په هغے کښے محمود د راجا په لاس کښے ګرفتار شو. ولے راجا دے بیا پرے ښودلو. په کال ۱۵۲۶ء کښے دګجرات په تخت "بهادر شاه" حکمران شو. دګجرات او مالوے تعلقات دقدیم نه خراب وو. په دے ورځو کښے د چتوړ رانا سانګا او دګجرات بهادر شاه دمالوے برخلاف اتحاد اوکړو. او په کال ۱۵۳۴ء کښے دګجرات او چتوړ متفقه فوځونو په مالوے حمله اوکړه. او دغه شان په مالوه باندے دګجرات قبضه راغله. محمود ثانی اووژلے شو. او په مالوه کښے دخلجیانو حکومت هم ختم شو.

**خلجیان څوک وو؟** :- دخلجی قام دنسل مسئله په مله کښے ده. په خپله ددے خاندان د بادشاهانو (جلال الدین. علاؤالدین) په حقله دا خبره معلومه نهٔ ده چه ددوئ مورنۍ ژبه پښتو وه که ترکی؟ زما په قیاس کښے ددوی مورنۍ ژبه پښتو وه. لکه چه دلاندے شهادتونو نه به واضح شی. اګرچه د ترکو سره د ژور تعلق اوګوانی په وجه به ترکی ژبے هم د دوئ د مورنۍ ژبے حیثیت موندلے وی. به هرحال څنے مؤرخین دوی مغل، څنے ترک او څنے ئے پښتانهٔ ګڼی.

د نظام الدین هروی په قول د خلجیانو مورث اعلیٰ قالج خان نومیدهٔ. چه د چنګیز خان زوم وو. . او د چنګیز خان نه د څه خفګان په وجه د خپل اولاد او دخپلو توابعو سره په کهٔ راغلو او دغور په علاقه کښے میشته شو. دے وائی چه دغوری بادشاهانو د فتوحاتو او حملو په سلسله کښے خلجیان هندوستان ته راغلل. او وروستو بیا د غلام خاندان د بادشاهانو په فوځونو کښے شامل شول. "فرشته" هم د خلجیانو مورث اعلیٰ قالج خان ګڼی. او ورسره دا هم وائی چه د "ترک بن یافث" په یو ولسو ځامنو کښے د یو نوم خلج وو. او خلجي قام ددے خپل مورث اعلیٰ په نامه خلجی مشهور شو

لیکن ددے دواړو فاضلانو خیال درست نهٔ معلومیږی. که چرے دا روایت تسلیم شی نو بیا به دا هم اومنلے شی چه خلجیان په افغانستان کښے د چنګیز خان نه وروستو اباد شوی دی. او ددے نه وړاندے په افغانستان کښے دخلجیانو هډو وجود نهٔ وو. حال دا دے چه دغوریانو نه اګاهو د غزنویانو په دوره کښے بلکه ددوی نه هم وړاندے د صفاریانو په زمانه کښے خلجیان موجود وو. او ددے خاندانونو اکثر فوځونه په خلجیانو

مشتمل وو۔ او د دربار غزنی بهترین فوځی طاقت خو هم دغه خلجیان وو۔ د محمد غوری په فوځونو کښې خو د خلجیانو موجودګی ، په خپله منی ۔ د محمد غوری په وخت کښې بختیار خلجی د بنګال و بهار په یو وسیعه خطه کښې د خلجیانو خود مختار حکومت قائم کړے وو۔ چه هسے په نوم د دربار دهلی ماتحت وو ۔ دا هم یو تاریخی حقیقت دے چه د چنګیز خان د عروج زمانه د محمد غوری د وفات نه پس شروع کیږی نو بیا به دا څه رنګ او منلے شی چه خلجیان د چنګیز خان سره او یا د هغهٔ نه وروستو افغانستان ته راغلل. او دومره زر ئے اسلام قبول کړو او بیائے دومره ترقی اوکړه چه څنې پکښې د سلطان بلبن با اقتداره امیران هم شول ۔ دا سے هم معلومیږی چه نظام الدین هروی فرشتے او دغه قسم نورو مؤرخینو ته د لفظ قالج او خلج نه غلط فهمی شوی ده۔ د دوی په خیال کښې " خلج " د قلج یو محرف شکل او قلج د قالج نه مخفف دے۔ د دے غلط فهمئ زیر اثر دے مؤرخینو په غلط ډول هغه منګول (مغل) خلجیان ګڼلی دی۔ کوم چه د چنګیز خان د اولاد په وخت کښې د غور په علاقه کښې اباد شوی وو۔ او نن زمانه کښې دے خلقو ته " هزاره " وئیلے شی۔ او د دوی په نوم د غور علاقه په " هزاره جات " مشهوره ده۔ بنا په دے د خلجیانو او قالج خان ترمینځه رابطه قائمول د تاریخی شواهدو په رڼا کښې څه مرسته نهٔ مومی ۔

دا خبره هم د فکر وړ ده چه د کیقباد په وخت کښې د هغهٔ د وزیر نظام الملک په شرارت په هندوستان کښې نو مسلم مغل په هر ځائے کښې بے دریغه قتل شوی وو۔ ولے دغه وخت خلجیانو ته چا هیڅ نهٔ وو وئیلی ۔ حالانکه خلجیان په دغه وخت کښې په هندوستان کښې بے شمیره وو۔ د دے نه دا صفا معلومیږی چه د خلجیانو او مغلو ترمینځه هیڅ قسم څه ملی رشته او د خپلولئ څه رابطه نهٔ ده۔

خلجیان ترک هم نهٔ وو۔ ځکه چه دوی په هند کښې هم په دے خپله نامه (خلج) مشهور وو ۔ څه رنګ چه " ترک " په خپله نامه موسوم وو ۔ د دے نه علاوه د دے خبرے مرسته د کیقباد د بیمارئ په موقع د ترکی امیرانو د طرز عمل نه هم کیږی۔ په دغه موقع چه ترکی امیرانو کومه رویه د خلجیانو په باب کښې اختیار کړی وه۔ د هغ نه دا صفا معلومیږی چه خلجیان ترک نهٔ وو ۔ د فرشتے د وینا مطابق ترکی امیرانو د کیقباد ماشوم ځوے په دے غرض تخت نشین کړے وو۔ چه د ترکی النسل خلقو د وفادارئ یو مرکز موجود وی۔ په دے موقع دوئ د هغه امیرانو د وژلو تابیا هم کړی وه ۔ د کومو نه چه د دوئ په خیال کښې ترکانو ته خطره پیښیدلے شوه۔ او په دے امیرانو کښې د جلال الدین خلجی نوم سر

فهرست وو ـ که چرې خلجيان نسلاً ترک وې . نو د دې خبرې به هيڅ ضرورت نهٔ وو.

اوس به د جلال الدين خلجي د تخت نشينئ په موقع د دهلي د عام اولس د مخالفت اسباب اوګورو . دا خو ظاهره ده چه د دهلي عام اولس خو نهٔ ترک وو او نهٔ خلجيان وو. هغوی رعيت وو. او هرڅوک چه په تخت ناست وې نو د هغهٔ اطاعت به ئې کولو. ولې د دهلي د اولس له خوا د ترکانو حمايت او د خلجيانو مخالفت هم په دې وجه وو چه خلجيان د ترکانو هم نسل نهٔ وو. د دې خبرې مرسته د کيمبرج هسټري آف انډيا (جلد سوم ص۹۱) نهٔ کيږی . د دې تاريخ مطابق د کيقباد د بيمارئ په وخت کښې د دهلي خلق په دې خبره ښهٔ خبر وو . چه خلجيان د پښتنو (افاغنه) خپلوان دی نه د ترکانو. په دې صورت کښې دا سوال پيدا کيږی چه د دهلي عام اولس د ترکانو حمايت او د خلجيانو مخالفت ولې کولو؟ زما په خيال کښې د دې مخالفت وجه دا کيدې شي چه څه رنګ په وروستئ زمانه کښې دځنې ليکوالو له خوا پښتانهٔ د وحشيانو ، غير مهذب ، غلوغالچکو او زر پرستو په الفاظ ياد شوی دی . دغه رنګ به په هغه زمانه کښې هم د دهلي د اوباشو ، بنګيانو ، شرابيانو له خوا «خلجيان» او «افاغنه» د غير مهذب او وحشيانو په الفاظو ياديدل . دا ظاهره ده چه «ترکان» د هند د سل کلنئ حکومت او شاهي اقتدار په وجه ډير دولت مند او عيش پرست شوی وو. د دوی په ژوند او استوګنه کښې ډير نزاکت او نفاست داخل شوې وو. په خلاف د خلجيانو او پښتنو چه څه خو به د فوځي ملازمت په وجه او څه به د خپلو طبعي او قامي خصوصياتو له کبله شاړ شپاړ ، ايغ بيغ او د نزاکت او نفاست نه به ناخبره وو. او د کيقباد د زمانې د اوباشو په خيال کښې به يقيناً وحشيان او غير مهذب وو. د دهلي اوباشو ته خو د کيقباد غوندې شرابي کبابي بادشاه پکار وو. نهٔ د جلال الدين په شان ګرګ باران ديده چه ټول عمر ئې د مغلو په وينو لاس سرهٔ وو. د دې خلقو مخالفت د دې خبرې غمازی کوی چه د دوی په نظر کښې خلجيان غير مهذب معلوميدل او د دوئ حکومت ئې په خپل ځان باندې دنګ ګڼلو . زما په خيال کښې د دهلي خلقو په دې موقع هم هغه کردار څرګند کړې وو. کوم چه د غزني خلقو د «بهرام شاه» او سيف الدين سوری د جنګ نه پس څرګند کړې وو. بنا په دې دا ظاهره ده چه د خلجيانو او ترکانو ترمينځه څه نسلي رشته نهٔ وه.

د خلجيانو د اصل په باب کښې روسی فاضل مسټر بارتولډ دا نظريه لری چه د پښتنو «غلجي قبائيل» او د ترکانو «خليج قبائيل» يو خلق دی . د دې فاضل په خيال کښې

دا «خلج قبائیل» د «غزترکانو» د وفاق یوه څانګه ده. ددې قبائیلو ورومبۍ دسته په لسمه صدۍ میلادي کښې په رود آمو راپورې وتلې او د محمود غزنوي په فوځونو کښې د یو اهم عنصر په ډول شامله شوې وه. ددې نظریې مطابق دې خلقو (خلجیانو) په قلاره قلاره د پښتنو دودونه دستورونه خپل کړل. او د دوی ژبه ئې اختیار کړه. وروستو دغه خلق په غلجیانو مشهور شول.

دا نظریه لکه څه رنګ چه ښاغلي «کیرو» وائي په دې وجه مرسته نه کوي چه که واقعي خلجیان ترکي النسل وې. او په دغه زمانه (لسمه یوولسمه میلادي صدۍ) کښې د پښتنو دودونه دستورونه او ژبه خپله کړې وې نو د دې وخت د فارسي او عربي لیکوالو به خوا مخا دې ذکر کړې وو. د دې نه علاوه داخلق (خلجیان) د غز ترکانو د وفاق یوه څانګه هم نه شي کیدلے. ځکه چه غز ترکان خواه که ساجوقیان وو که ترکمان د محمود غزنوي په زمانه کښې خراسان ته راغلي وو. او د دې وخت نه ډیر اګاهو خلجیان په افغانستان کښې موجود وو. لکه چه د صفاریانو او بیا د سبکتګین په فوځونو کښې مو داخلق لیدلي دي. البته د روسي فاضل د نظریې دا خبره چه د پښتنو غلجي قبائیل او د مؤرخینو خلجي قبائیل یو خلق دي. تاریخي مرسته موږي. چه د راتلونکي تفصیل نه به واضح شي.

د غزنوي، غوري او غلام بادشاهانو د فوځونو په ذکر کښې پخواني مؤرخینو «خلج و افغان» په مختلفو موقعو یو ځائې ذکر کړي دي. د «ترک و تاجیک»، «عرب و عجم» په شان «خلجي و افغان»، په یو ځائې ذکر کول د دې قیاس مرسته کوي چه دا دواړه فرقې په ژبه، دودونو، دستورونو، خویونو عادتونو او قامي خصوصیاتو کښې یو شان وې. د کیمبرج هسټري آف انډیا (جلد سوم ص۹۱) په ذریعه راته دا هم معلومه شوې ده چه خلجیان د پښتنو ځلون وو نه د ترکانو. د دې نه دا معلومیږي چه خلجیان د یو داسې قام اولاد وو. چه هغه د ډیرې پخوانۍ زمانې نه د پښتنو په زمکه میشته شوې او د زمانې په تیریدو سره ئې د پښتنو تهذیب و تمدن او ژبه اختیار کړې وه. په دې ضمن کښې ښاغلي کیرو په خپل تاریخ «دي پټهان» کښې داسې وائي:-

په موجوده پښتنو قبائیلو کښې د غلجیانو قبیله په ټولو کښې زیاته ده. او دا قبیله په یو وخت کښې هم وړه قبیله نه وه. اونه د کوه سلیمان په زنځیرې کښې چرته پټه وه. دا خبره د فکر وړ ده چه ټول «غلجیان» خپل ځان ته غلجیان وائي نه غلزیان. خلج او غلج تقریبًا یو لفظ دے.

له دا خبره د روزمره مشاهدې نه هم ثابته ده. عام خلق دا لفظ غلج وائي نه غلزے. لفظ «غلزے» صرف د پښتنو په شعر کښې لیکلے شوے

او لفظ غلزے به شاید چه د شجرہ نویسو دافسانې د تائید او مطابقت په غرض ایجاد شوے وی ۔ او د ټولو نه اهمه خبره دا ده چه کوم وخت خلجیان هندوستان ته راغلی وو ۔ هغه وخت دوی خلجیان وو نهٔ ترک ۔ او دوی په هره موقع د پښتنو سره یوځائے ذکر شوی دی ۔ سربیره ددے ټولو د لفظ غلجي او خلجي دیو والی په باب کښے دخوشحال خان خټک دا شعر یو واضح شهادت دے ۔ ے

بیا سلطان جلال الدین په سریر کښیناست
چه په اصل کښے غلجے د ولایت وو[۱]

دا نظم خوشحال خان په سنه۱۶۵۰ء کښے وئیلے دے او دا ظاهره ده چه که غلجے او خلجے یو لفظ نهٔ وے نو خوشحال خان به هیڅرے د ،، خلجي ،، په ځائے غلجے نهٔ وئیلو ۔ دا د دے خبرے څرګند ثبوت دے چه د هغه وخت خلجیان او د نن زمانې غلجیان یو خلق دے ۔ او دا وئیل به هیڅرے بے ځایه نهٔ وی چه ،، غلجے ،، د ،، خلجي ،، پښتینی صورت دے ۔ او لفظ خلجي په فارسیٔ ژبه کښے د عربیٔ ژبے د لفظ ،، خلج ،، شکل دے

دا خبره چه د فارسیٔ ژبے (خلجي) او د پښتو ژبے (غلجي) یو لفظ او یو خلق دے ۔ دفرشته د یو تحریر نه هم ثابتیږی ۔ فرشته د بابر په ذکر کښے د هغهٔ د سنه۹۱۳ھ د واقعاتو په ضمن کښے دا سے وائی :-

و در ثلث عشره تسعمائه بتاخت اولس افغانان خلجي سوار شده صد هزار گوسفند و دیگر چیز ها بدست سپاه آنحضرت افتاد و برگشت[۲] ۔ په دے عبارت کښے د ،، اولس افغانان خلجي ،، نه هم هغه خلق مراد دی چه نن زمانه کښے ورته غلجي وئیلے شی ۔ دا خلق نن هم په هغه علاقه کښے آباد دی ۔ په کومه کښے چه د بابر په زمانه کښے میشته وو[۳] ۔ بلکه د محمود غزنوی په زمانه کښے هم دلته وو ۔ او د دے زمانے نه سوونه کاله اګاهو په دے مزکه میشته شوے وو ۔

پورته موځرته وئیلی دی چه د هندی خلجیانو ربعنی د جلال الدین وغیره) مورنیٔ ژبه به پښتو وه ۔ ددے قیاس مرسته ددے نه کیږی چه په کومو ورځو کښے جلال الدین خلجي په هند کښے د ،، بلبن ،، له خوا د هغهٔ د فوځونو سالار او دمغربی قلاګانو محافظ او د مغلو سره په جنګونو کښے بوخت وو ۔ هم په دغه زمانه کښے په افغانستان کښے ،، غلجیان ،، دخپل مشر

---

[۱] کلیات خوشحال خان خټک ۔ قصیده (و) ص۵۹۶ ۔ [۲] فرشته ص۱۹۹ ۔ [۳] بابر نامه ۔

«هوتک بابا» په مشرۍ کښې په خپله علاقه کښې د مغلو سره «جنګونو کښې لګيا وو. لکه چه ددوی د يو جنګ (چه په سورغر شوے وو) حال مو بيان کړے دے. د دے نه دا معلوميږي چه «جلال الدين خلجي» او «هوتک خلجي» هم عصر وو - او دا ظاهره ده چه د جلال الدين اسلاف هم د دے هوتک بابا د پيدائش نه څه لږه موده وړاندے د افغانستان نه هند ته تلی وو. پس دا بالکل واضح ده چه د هند خلجيان او د افغانستان غلجيان به يو نطق وو. د دوئ تهذيب و تمدن به يو وو. او ژبه به ئے هم يوه وه. او چونکه د هوتک بابا او نورو غلجيانو ژبه په دغه دیارلسمه صدۍ کښې هم پښتو وه. نو موږ دا وئيلے شو چه د هندی خلجيانو ژبه به هم پښتو وه. او د ښاغلی کيرو دا قياس بالکل درست دے چه «خلجي» د «غلجي» نه مفرس دے.

تراوسه چه موږ د خلجيانو د نسل په باب کښې څه اولوستل. د هغې نه دا معلومه شوه چه خلجيان نه مغل وو او نهٔ ترک. ولے چونکه دوئ د پښتنو سره په هره موقع په خپل بيل نوم ذکر دی. نو د دے نه دا معلوميږی چه اګرچه دوی د ژبے او د تهذيب و تمدن له مخه خو پښتانهٔ وو. ولے دا امکان کيدے شي چه دوئ به خالص پښتانهٔ نهٔ وو. بلکه دوی به د يو داسے قام اولاد وو چه هغه د يوے اوږدے زمانے نه د پښتنو سره د ګواندې ګلوئ، اولسی او مجلسی تعلقاتو په لړ کښې ګنډلے شوے وو. او د دے نزديکيت او تعلقاتو په وجه به ئے د پښتنو تهذيب و تمدن رسم ورواج او ژبه اختيار کړی وی. او د زمانے په تيريدو سره به دا خلق په پښتنو کښې داسے خلط ملط او ګډوډ شوے وی چه بے د خپل قبيلوی نامے نه به ئے نور امتيازات ختم شوی او په پښتنو کښې به مدغم شوی وی. په دے بنا موږ ته د خلجيانو د اسلافو په لټون کښې په تاريخ کښې د ترکانو نه وړاندے زمانے لټول پکار دی. داسے قام کوم کيدے شي؟

د ترکانو نه وړاندے د افغانستان په مزکه چه کوم قام حمله کړی وه هغه په تاريخ کښې د اسلامی مؤرخينو له خوا د «هياطله» په نامه مشهور دے. د اکثرو مؤرخينو په خيال کښې د خلجي يا د غلجي قام اسلاف هم دغه «هياطله» دی. په دے ضمن کښې

ښاغلے کيرو په خپل کتاب کښې داسے وائی «افتاليتو» (هياطله) په خپل وخت کښې نه خوڅه ادب لرلو او نهٔ دوئ د خپلے زمانے څه آثار وکتبات پریښودلی دی. نو د دے نظريے په ثبوت کښې د تاريخي شهادتونو يا کتباتو د مرستے طمع يو بے ځايه خبره ده. بيا هم ځنے داسے تاريخي شواهد شته چه د هغې نه خبره ښا ته وتلے شي. دا فاضل ليکوال وائی د «هياطله» ذکر عرب

مؤرخ الخوارزمي په خپل تاریخ مفاتیح العلوم کښې (۳۶۵ھ / ۹۷۵ع) داسې کړې دے.

"هیاطله" د انسانانو هغه ډله ده چه لویه دبدبه او شان و شوکت ئې لرلو. او د "تخارستان" ملک ئې په قبضه کښې وو. هغه "ترک" چه د "خلخ" یا "خلج" په نامه یادیږی. هغه د دے خلقو اولاد دے. یو بل مؤرخ اسطخری په خپل کتاب المسالک (۳۲۱ھ / ۹۳۳ع) کښې د "خلج" په باب کښې داسې وائی:-

"خلج یو قسم ترک دی چه په پخوانۍ زمانه کښې د هند او سجستان (سیستان) د اضلاعو ترمینځه آباد شول. دا خلق څاروی پالی - او په کړه وړه او رنګ جثه کښې د ترکو په شان دی:

په دے تاریخی شواهدو کښې د تخارستان نه مراد هغه علاقه ده چه د "بغلان" ګیرچاپیره دا وسنی افغانستان په شمالی او مشرقی حصو مشتمله ده. او چه دا دواړه شهادتونه یو ځائې او لوستلې شی نو د دے نه هغه علاقے مراد کیدے شی کوم چه هیاطله و په خپله زمانه کښې فتح کړی وے - (پس) د دے شواهدو په رڼا کښې د غه "هیاطله" د خلج یا خلجیانو" اسلاف ثابتیږی - او دا هم ورنه معلومیږی چه د غز ترکانو د مهاجرت نه پنځه سوه کاله اګاهو د "خلج" قام اسلاف په دے علاقه کښې میشته شوی وو. او یوائې د "خلج" قام نه بلکه د څو نورو غالبو او زبردستو قبائیلو هم کوم چه د هند په شمالی حصه کښې استوګنے وے:

دا قیاس چه د پښتو موجوده غلجي قبائیل او د هند خلجیان به یو خلق او د دوی اسلاف به هیاطله وو. د دے قیاس نه هم مرسته مومی.

د افتالیټ قام په ذکر کښې مو دا خبره وړاندے وئیلی ده چه دا خلق د خپل اقتدار دسقوط نه پس بیخی نه وو ورک شوی. بلکه د دوی څنے قبیلو د هندوکش په شمال او جنوب کښې په مختلفو علاقو کښې لکه بامیان، غزنه، غرجستان (په وسیعه معنیٰ کښې د هزاره جات علاقه) وجیرستان (په وسیع معنیٰ کښې د جاغوری علاقه) او تخارستان (په وسیعه معنیٰ کښې د بغلان نه چارچاپیره علاقه) کښې محلی او علاقائی ریاستونه قائم کړی وو. په دے حکومتونو کښې د "بامیان او وجیرستان" د ریاستونو ذکر چینی زائر هیون سانګ هم کړے دے. دغه شان په اسلامی مؤرخینو کښې (سطخری او طبری) د بامیان محلی حکمران د "شیر" په لقب او د "غرجستان" محلی حکمران د "شار" په لقب یاد کړے دے.

"غرجستان" لکه چه ظاهره ده دوو کلمو نه مرکب دے (۱) غرج (۲) ستان په دے لفظ کښې (ستان) د ظرفیت کلمه ده - چه په پښتو کښې هم د ستانې (کور - کورنۍ) په شکل کښې موجوده

ده ـ نو د غرجستان نه مراد شو د « غرج » د استوګنې ځائ یا علاقه ـ دا غرجستان کوم ځائ وو؟ عرب جغرافیه نویسو هغه علاقه چه د بادغیس په مشرق یعنې د بادغیس او سرپل ترمینځه واقع ده ـ او ددے علاقه زیاته برخه د مرغاب سیند نه سیرابیږی ـ د « غرج الشار » په نامه یادکړی ده ـ دا نوم « غرج الشار » د دوؤ کلمو « غرج » او « شار » نه مرکب دے ـ عرب مؤرخینو په اتفاق د « شار » لفظ ددے علاقے د محلی حکمران لقب ګڼلے دے ـ پاتے شو « غرج » (چه دا لفظ « غرژ » او « غرش » هم ضبط شوے دے) په دوو مفهومو تعبیر شوے دے. یو مفهوم داچه دا لفظ « غرج » د پښتو ژبے لفظ « غر » دے ـ او بله دا چه « غرج » دیو قام یا دیو قبیلے نامه ده ـ د اول مفهوم مطابق به ددے لفظ معنیٰ شی ـ د « غرونو شار » یعنی د غرونو یا د غرشیزے علاقے شار (بادشاه) ـ عرب مؤرخ المقدسی د « غروج الشار » هم دغه مفهوم اختیارکړے دے او د « ملک الفرج » لقب ئے د شار غرجستان دپاره او د ملک الجبال لقب ئے د غور د شاهانو دپاره استعمال کړے دے ـ

د قدیم افغانستان په جغرافیه کښے د غرجستان نه مراد هغه علاقه ده چه نن ورځ د غور د علاقے په قطب او د هرات شرقاته او د اندخوی په قبله په نهو درو مشتمله ده ـ دا نهه درے په دوو ډلو کښے تقسیم دی ـ په اوله ډله کښے پنځه درے دی ـ او په مجموعی طور ورله پنجصده ویلے شی ـ په دویمه ډله کښے څلور درے دی ـ او په مجموعی شکل کښے ورله چهارصده وائی ـ او نهه واړه په نهه صده یادیږی. د اولے نظریے مطابق به شار غرجستان ددے علاقے حکمران وو ـ او ددے علاقے استوګن به د خپلے علاقے د طبعی مناسبت په وجه به غرجیانو (یعنی د غرشیزو علاقو اوسیدونکی) مشهور وو ـ

د غرج د دویم مفهوم (یعنی د دے نه به مراد یو قام یا قبیله وی) مطابق به د غرجستان نه مراد شی د « غرجی » قبیلے د استوګنے ځائے یا علاقه او د شار غرجستان نه به مراد شی د غرجی قبیلے یا د غرجیانو شار یعنی بادشاه ـ اوله نظریه یعنی چه د غرج نه به مراد « غر » وی ـ کمزوری ده ـ ځکه چه په پښتو کښے « غر » ته « غرژ » « غرج » یا « غرش » نه شی ویلے نو دا ضروری ده چه ددے لفظ (غرج) نه به مراد یوه قبیله وی ـ او « غرجے » به هغه چاته ویلے شی چه د غرج قبیلے یو غړے وی ـ « غرج » او « غلج » بیخی یو لفظ دے ـ په دواړو لفظونو کښے صرف د (ر) او (ل) فرق دے ـ (ر) او (ل) دواړه توری په پخوانیو اولسی ژبو کښے د یو بل په ځائے ویلے شول ـ (لکه په رابجا او لاجاکښے) یالکه د

دوستې فارسي ژبې « ديوار » او د پښتو ژبې « ديوال » په دې بنا « غرچ » او « غلجي » يو لفظ شو. دا هم ډېره قرين قياس ده چه دا لفظ (غرچ) په ابتدا کښې هم (غلجي) وو. ځکه چه دا ظاهره ده چه پښتانهٔ د هياطله نه هم سوونه کاله وړاندې د افغانستان په مزکه موجود وو. وې کوم وخت چه « هياطله » قام د دوی سره په ګوانډ کښې ميشته شوی وی. نو د پښتنو د ګوانډ او د دوی د تماس او تعلق په وجه به د دوی ژبه هم (هرڅه رنګ چه وه) متاثره شوی وی. او وروستو به عرب مؤرخينو په اسلامي دوره کښې د نوی محيط و ماحول مطابق دا لفظ غرج او غرجستان ضبط کړے وی.

« غرج » باميان او تخار. لکه چه اوويلے شول هغه علاقے دی چه هياطله په کښې ميشته شوی وو. لکه چه د هيون سانګ چيني زائر او د عرب مؤرخ الخوارزمي د شهادتونو نه څرګنده ده. دا ظاهره ده چه هياطله قام په مختلفو قبائيلو مشتمل[ا] وو. او د افغانستان مختلفې علاقې د دوی د مختلفو قبائيلو د استوګنې په وجه هم د دوی په قبيلوی نامو مشهورے وے. لکه په مثال کښې تخارستان (د تخاري قبيلے د استوګنے ځائے) زابلستان (د زابلي قبائيلو د استوګنے ځائے). او غرجستان (د غرجي قبيلے د استوګنې ځائے). دا هم معلومه ده چه د هياطله قام د اقتدار په زمانه کښې د غزني، غرجستان، او بدخشان علاقے د دوی د فوځي طاقت مرکزونه وو. چنانچه د هياطله قام د علاقائي حکمرانانو مسکوکات د غزني، غرجستان او جيرستان. د علاقو نه نسبتًا زيات موندلی شوی دی. او دا په دې دلالت کوی چه د مرکزي اقتدار د سقوط نه پس به هم هياطله قام په دې علاقو کښې په کثرت اباد او د علاقائي رياستونو خاوندان وو.

د« قياس چه « غرج يا غلج » دا فتاليت قام يو ځانګه ده. د مسکوکاتو په شهادت هم مرسته موږ. د شار غرجستان په مسکوکاتو د بادشاه تصاوير او د افتاليت قام د نورو علاقائي حکمرانانو تصويرونه چه په هغه مسکوکاتو موجود دی چه د کابل او جلال آباد د خوا و شا نه موندلی شوی دی. په خپل مينځ کښې حيرت انګيز مشابهت لری. او که چرے د يک په وجه د دوی بيلتون نهٔ وے شوے نو په دوی کښې به فرق او امتياز کول قطعي ګران وو. د « شار » غرجستان » او نورو هياطله حکمرانانو ترمينځه د پوزے،

---

[ا] د هياطله قام په حقله د عالمانو دا خيال دے چه دا اولس په مختلفو قبيلو کښې ويش وو. او په دے خلقو کښې د اتحاد او اشتراک ذريعه د دوی ژبه وه.

دغږ دکاسیے، د سترګو، دزنے غرض دخط وخال دا حیرت انګیز مشابهت په دے دلالت کوی چه "غرج یا غلج، دهیاطله قام هغه څانګه ده چه په اکثرو احتمالاتو د لسیے صدئ په مینځ مینځ کښے دعرب مؤرخینو لخوا د "خلج، په نامه ذکر شوی ده. په کومو علاقو کښے چه نن ورځ د پښتنو غلجي قبائیل اباد دی هم په دغه علاقوکښے هیاطله قام دخپل اقتدار په وخت کښے اوده هغې نه پس هم میشته وو. پس د پورته شهادتونو په رڼا کښے دا خبره دشک نه اوتې چه د هندوستان خلجیان او د افغانستان غلجیان یو خلق او د دوی اسلاف دغه افتالیت وو.

د صفاریانو غزنویانو او غوریانو د حکومت په زمانه کښے او بیا په پسی وروستو په هندکښے د غادم خاندان د بادشاهانو د فوځونو په لړکښے خلجیان د پښتنو سره عمومًا یوځائے ذکر شوی دی. دا د دے قیاس مرسته کوی چه دواړه قامونه د ډیرے اوږدے زمانے نه یوځائے اوسیدل. او په خپل مینځ کښے ئے قریبي تعلقات لرل. دا سے معلومیږی چه د هیاطله قام زاولی (زابلی) او غزجي (غلجي، خلجي) قبائیل د هیاطله د نورو قبائیلو په نسبت د پښتنو سره د ګواند ګلوئ او اولسي او مجلسي تعلقاتو په لړکښے د یوبل سره ډیر ګنډلی وو. او د دے تعلقاتو په نتیجه کښے دوئ د پښتنو ژبه، دودونه، دستورونه، د ډیرے مودے نه خپل کړی وو. د زمانے په تیریدو سره دوئ د پښتنو سره داسے خلط ملط شول چه د اصلی پښتنو او د دوئ ترمینځه بیلتون ګران شو. او سوا د هغې قبیلوی نوم غزجي نه چه په فارسی کښے خلج او په پښتو کښے غلج دے. د دوی د قامی آثارو نه په دوی کښے نو رهیڅ پاتے نهٔ شول. په دے موقع کهٔ د "غلجي، قبائیلو په باب کښے د پښتنو شجره نویسو روایت هم په خیال کښے اوساتو. نو د هغې نه هم د دے نظرئے مرسته کیږی. دا روایت اګرچه افسانوی حیثیت لری. ولے که د دے حقیقت ته اوکتے شی نو د دے نه د غلجیو او پښتنو ترمینځه الحاق معلومیږی.

دا فغانستان په مختلفو علاقو کښے چه افتالیت په خپله زمانه کښے میشته شوی وو. د هغوئ اخلاف په هغه علاقو کښے د نورو قامونو سره خلط ملط اوګڼی وی شول. او خپل قامی خصوصیات ئے ختم شول. ولے تر څه حده د دوئ شناخت د لباس، عادتونو او رسم ورواج نه ممکن دے. چنانچه د غلجیانو قبائیل اګر چه د زمانو را سے د پښتنو سره داسے خلط ملط شوی دی چه اوس په دوی کښے د دوئ د اسلافو آثار معلومول تر ډیره حده مشکل دی. بیا هم که چرے د یو سنګلی ځلمی غلجي خط و خال د "شار

غرجستان » او د «افتالیت » قام د نورو علاقائي حکمرانانو په مسکوکاتو باندے د تصویرونو سره مقابله کړے شي نو د دوئ خط و خال کښې حیرت انګیز مشابهت لیدلے شي ۔ او د دے نه دا قیاس د یقین درجے ته رسي ۔ چه دغه غلجي قبائیل دافتالیت قام اخلاف دي. غرض د پورته شهادتونو نه دا خبره ښه واضحه شوه چه د لسیے یوولسیے صدئ میلادي خلجیان هغه خلق وو چه نن ورځ په پښتنو کښې دغلجي قبائیل په نامه یادیږي ۔ دا خلق د نسل له مخه هیاطله وو ۔ هیاطله نسلاً څوک وو ۔ په دے باب کښې د هیاطله په ذکر کښې پوره پوره تفصیل موجود دے ۔ دلته به دومره وئیل کافي وي چه اکثر عالمان دے عقیدے ته مائیل دي چه هیاطله د ترکي آریائي نسل مخلوط خلق وو ۔ دوئ نه خو خالص ترکي النسل وو ۔ او نه خالص د «هندي سیتي آرین » خانه بدوشو قبائیلو هم نسل ۔

پاتے شوه دا خبره چه هرکله خلجیان د هیاطله قام څانګے وے نو مؤرخینو دوی ترک ولے اوګڼل ؟ دا خبره به د دے لاندے وضاحت نه رڼه شي :-

لکه چه پورته مو دالخوارزمي په شهادت دا خبره لوستي ده چه هیاطله په تخارستان کښې اوسیدل ۔ د تخارستان نه مراد هغه خطه ده ۔ چه د هندوکش په شمال کښې د پامیر دلمنے نه واخلے ټول قطغن ، بدخشان ، مزار شریف ان د میمنے پورے خطه په کښې شامله وه ۔ او د شمال په لور د آمو دریاب نه پورے سغدیانه هم د دے برخه وه ۔ چیني زائر هیونګ سانګ دا خطه د" تو ۔ هو ۔ لو ۔ لو ۔ هو ۔ لو" په الفاظو ضبط کړي ده ۔ دافغانستان نه د چیني زائر د عبور د مرور زمانه دافتالیت قام د ضعف او د ترکانو د عروج زمانه وه ۔ او په تخارستان باندے د ترکانو سیادت قائم شوے وو ۔ لکه چه دا نو موړے لیکوال وائي ۔ په دے علاقه (تخارستان کښې شاهي کورنئ د میځ نه وتلي ده ۔ او د دے خطے په مختلفو علاقو کښې قبائیلي سرداران حکومت کوي ۔ دوی په شمیر کښې (۲۷) دي ۔ او ټول سرداران د ترکانو مطیع دي ۔ د دوی مرکز د قندز ښار دے ۔"

هغه علاقے چه هیاطله قام د خپل اقتدار په وخت کښې فتحه کړي وے ۔ د عربو د حملو په وخت کښې په هغو باندے د ترکانو تسلط وو ۔ او عرب د دے ترکانو سره په جنګونو کښې ښمرو شوي وو ۔

عرب مؤرخین په دغه زمانه کښې د خراسان د مختلفو قامونو د عرق شناسئ نه په پوره پوره ډول واقف نه وو ۔ نو په دے بنا دوی دافغانستان ټول څواني قامونه خواه که هغه نسلاً هیاطله وو یا د کوشانیانو او هیاطله د مخلوط نسل ، کله د عجمیانو او کله د ترک

نژادو په الفاظو یادکړی دی. حال دا دے چه د عربو د حملو په وخت کښے سواد "طخارستان" د علاقے نه د موجوده افغانستان په یوه خطه کښے هم د ترکانو اثر و نفوذ نهٔ وو رارسیدلے. ولے د دے باوجود د عرب مؤرخینو لکه د "بلاذری" "طبری" او "ابن اثیر" وغیره نهٔ صرف "هیاطله" د ترکو په نامه یادکړی دی. بلکه د کابل قندهار او سیستان په معرکو کښے ئے ترک قبائیل د "رتبیلانو" مرستیال او کومکیان هم گڼلی دی. او د دوئ په تقلید کښے ځنې نورو مؤرخینو لکه الخوارزمی (د مفاتیح العلوم مؤلف) او د تاریخ سیستان مؤلف هم د عربو په مقابله کښے د "الرخج" (یعنی د موجوده قندهار علاقه) مدافعین هم ترک گڼلی دی. حالانکه داسے نهٔ ده او دا یقینی ده چه د عربو د هجوم په آغاز کښے د افغانستان په شمالی، غربی مرکزی، جنوبی او شرقی حصو کښے د هغه زمانے د طخارستان نه علاوه د جنوب، شرق او غرب خطو ته د ترکی نژاد قبائیلو پښه نهٔ وه اوړده شوی. د دے باوجود که چرے موږ د اسطخری شهادت ته په غور او گورو نو د دے نه دا صفا معلومیږی چه د دهٔ په خیال کښے "خلج" بیخی "ترک" نهٔ وو. بلکه په کړهٔ وړهٔ کښے د ترکانو په شان وو. او دا په دے دلالت کوی چه د "خلج" د ترکو نه جدا خلق وو. البته دیو ځائے استوګنے او کوانه کلوی د تعلقاتو په وجه به د دوئ نسل څه نه څه متاثر شوے وو. د "خلج" کوم خصوصیت (ښاروی پالل) چه اسطخری لیکلے دے هغه نن ورځ هم په غلجی قبائیلو کښے موجود دے. دا قبائیل ښاروی پالی او اکثر د کوچی توب او پونده گیرئ ژوند تیروی.

د افتالیت قام په ضمن کښے د قام او د پښتنو د یوے بلے قبیلے (ابدالی) د نسلی رشتے او تعلق په لړکښے سناغلے کیرو په خپل کتاب "دی پټهان" صنوکښے د انګریز سیاح مسټر میسن" چه غالباً په ۱۸۲۸ء کښے ئے د افغانستان سیاحت کړے وو. د دے قیاس او دهغهٔ د خولے داسے وائی "درانیان" چه په هند او ایران دواړو ملکونو کښے د "ابدالیانو" په نوم مشهور دی. او هرکله چه موږ دا گورو چه د تاریخ قدیم سپین پوستی هنز (هیاطله) چه د کلاسیکی دورے مؤرخینو د افتالیت په نامه ذکرکړی دی. او دغه خلق (سپین پوستی هنز) د ارمنی لیکوالو له خوا د هپتل په نوم یاد شوی دی. نو موږ دا قیاس کولے شو چه "ابدالیان" یاد او سنی زمانے "درانیان" به هم د دے طاقتورو افتالیتو اخلاف وی. "سیاه پوش کافر" تراوسه پورے دا خبره یاده لری. چه د دوی اسلاف د میدانی علاقو نه دے غرنیزو علاقو ته "اودلو" (رازغلولی) دی. او دا لفظ "اودل" تراوسه پورے دا خلق "سیاه پوش کافر" د نیکمنئ علاقے د خلقو د پاره استعمالوی.

د « بناغلي ميسن » په دے قياس « مسټر کيرو » دومره تبصره کوي چه د تلفظ له مخه « افتاليت » او « دالي » کافي هم آهنګي او هم رنګي لري - ولے د دواړو قامونو ترمينځه دنسلي رابطے قائمولو د پاره د ډيرے څيړنے او تحقيق ضرورت دے - ځکه چه د ابداليانو د نسل مسئله د شاه عباس اعظم صفوي د زمانے پورے لا د تيرو نه نۀ ده را وتلي:

دا درست ده چه د افتاليت او ابداليانو ترمينځه د نسلي تعلق قائمولو د پاره د ډير زياړ او څيړنے ضرورت دے - ولے د مسټر « ميسن » دا قياس هم توجه طلب دے - د افتاليت قام کوم نامے چه بازنطيني ليکوالو ليکلي دي په هغ کښے يوه نامه « ابدلوي »[ع] هم ده - او دا بالکل واضحه ده - چه « ابدال » « اودل » او « هپتل » قريب قريب يو لفظونه دي. (او د (الف) او د (ه) د (ب) او د (و) د (ب) او د (پ) د (د) او د تا ابدال عام او مروج دے - په دے بنا « هپتل » په « ابدال » او « اودال » کښے بدليږي - دا هم عين قرين قياس ده چه څه رنګ د پښتنو د موجوده « غلجي قبائيلو » د پاره فارسي مؤرخينو « خلجي » لفظ استعمال کړے دے - د غه شان به دوي د « اودل » د پاره هم « ابدال » لفظ مروج کړے وي - او د دے ريښه به هم هغه پخواني د « ابدلوي » افتالي توي » او « هپتل » وغيره لفظونه وي - ابداليان په خپله ځان له « اودل » وائي - لکه چه د احمد شاه بابا د دے شعر نه معلوميږي

تهوله يو دي که غلجي دي که اودلے
سبنه هغه چه ے سبيبنه د زړۀ صفاده[ع۲]

او « اودل » هغه لفظ دے چه مسټر « ميسن » د سياه پوش کافرو له خوا ښکتنۍ علاقے د اوسيدونکو د پاره استعمال کړے دے - دا درست ده چه په تاريخ کښے د ابداليانو په حقله د شاه عباس اعظم د وخت نه وړاندے څه اشاره نۀ شي موندلے - ولے د دے نه دا مطلب هرګز نۀ شي کيدلے چه ګوندے دا خلق به د دے نه وړاندے موجود نۀ وو - د پښتنو د اکثرو قبيلو د نوم نشان نه د تاريخ پخوانۍ دورے خالي دي - د ابداليانو او غلجيانو علاقے تقريبًا د يو بل سره جوخت او متصلے دي - او د افغانستان په پښتنو کښے دا دواړه قبيلے د خپل قوت و اقتدار او افرادي طاقت په وجه د اوسني تاريخ په مختلفو دورونو کښے يو بل ته د ګوليدونکو قبائيلو په شکل کښے ځرګندے دي نو د دے خبرے ډير احتمال دے چه

---

ع تاريخ افغانستان جلد دوم ص۳۴۲

ع۲ پښتانۀ شعراء اول ټوک -

په قدیمه زمانه کښې به هم دا خلق د ځپلو نفوسو د کثرت په وجه د یو بل سره د رقیبانه جذباتو حامل وو. دا هم امکان لري چه څه رنګ د هیاطله قام ځنې قبایلو لکه زابلی، غوځي او داسې نورو د ملک په مختلفو حصو کښې علاقائي ریاستونه قائم کړي وو. د دغه شان به «ابدلوی» (اودلو- ابدالیانو) هم په مختلفو علاقو کښې هم په هغه زمانه کښې ځپل ریاستونه قائم کړي وي- او ډیره ممکنه ده چه په راتلونکي زمانه کښې د آثار قدیمه او مسکوکاتو د مطالعاتو په رڼا کښې دا تیرې په رڼا کښې بدلې شي. به هر حال «ابدال» «اودل» او «هپتله» په ځپل مینځ کښې ډیر هم آهنګ او د فقه اللغت له مخه مطابقت لري نو امکان لري چه څه رنګ غوځي (غلجي- خلجي) د افغانیت قام یوه څانګه ثابته شوې ده. دغه شان به «اودل» هم د دې قام یو ښاخ ثابت شي.

د غلجیانو او افغانیت قام د نسلي تعلق په لړ کښې د ښاغلي آقائې عبدالحیٔ خان حبیبي مقاله د ذکر وړ ده- دا مقاله د پښتو اکېډیمي پېښور په مجله «پښتو» (دسمبر- جنوري سنه ۱۹۶۰ع) کښې خوره شوې ده. د دې مقالې نه هم د دې پورته نظرې مرسته کیږي- په دې مقاله کښې ښاغلي حبیبي د «خلج» او «غلج» د تطابق او د دوی د اصل په حقله داسې وائي :- «غلجي او غلجي یا غلزی» په اصل کښې غرزی (یعنې کوه زاد) دی- یعنې د غرونو خلق- دا کلمه په غرج، غرجه غلچه او په نورو تاریخي کلماتو کښې هم موجوده ده- او کله «غ» «خ» اړوي او «غلجي» «خلجي» شي- د هند خلجیان چه په پېړیو په هند کښې سلطنت کړې دې- هم دغه غلجیان وو- د دوی ډیر څایونه اوس هم په افغانستان کښې شته- لکه خرج په زورکان کښې- خلج د هلمند د ناوې- او خلج د غزني- د قبائیلو په نامو کښې کله «خ» په «غ» اوړي لکه «خرخیز» «قرغیز» او د غور او سینې «ساغر» «منهاج السراج» ساخر ضبط کړې دې- او اصلاً «سورغر» وو- حدود العالم (سنه ۳۷۲هـ) د خلجیانو په باب کښې داسې وائي «د غزني په اطرافو کښې خلج ترکان پراته دي- او تربست، ګوزګان، بلخ او تخارستان پونده دي- او ورشو ګانې، څرځایونه او ډیر پسونه دي.»

ځنې مستشرقین دا عقیده لري چه د دغه غلجي د افتالیتو بقایا دي- «مارکوارت» وائي چه «خلج یا خولج» د هفتالیتو قبائیلو پاتې برخه دي- محمد ابن احمد الخوارزمي (سنه ۳۷۰هـ) هم د دې تائید کوي- دې وائي چه «خلج» او «کهجیه» ترکان د هیاطله د پاتې شونکو څخه دي-

دا خبره یقین ته نزدې ده چه غلجي یا خلجي او ابدالي به له پخوانو هفتالیتو او زابلي

بادشاهانو سره نژدو والے لری. څکه چه دغه هیاطله هم په دغه زابلستان کښې چه اوس هم په کښې دغه غلجي او ابدالی اوسی. بادشاهان وو. او په مسکوکاتو چه د دوئ شکلونه کښل شوی دی. هغه کټ مټ د دغو اوسنو پښتنو کړه وړه ته ورته دی - جګے پېزے ، غټے سترګے ، کږ ویښتان ، قوی بدنونه ئے عینًا د پښتنو دی."

په دے بنا "خلج یا غلج" د هغه ترکانو او غزانو د نسل نه نهٔ دی کوم چه په غزنوی دوره کښې او د بیا د ساجوقیانو په زمانه کښې خراسان ته راغلی وو. بلکه د اسلام د مخه چه کوم هفتالی آریائی اقوام په تخارستان او زابلستان کښې میشته شوی وو. زموږ "غلجیان" به د هغو سره خپلوی لری. او په دے دول د نظام الدین هروی او محمد قاسم فرشته له خوا "خلجیان" د قالج خان (چه د چنګیز خان زوم وو) په نسل کښې ګڼل هم بېخي غلط دی.

# لودي خاندان

د محمد غوري د وفات (سنه ۱۲۰۶ء) نه پس چه د دهلي په تخت کومو خاندانونو حکومت کړے دے- په تاريخ کښې هغه د ،، غلام، خلجي، تغلق، سادات او لودي،، په نومونو مشهور دي- په دے ټولو خاندانونو کښې د لوديانو تېر يو داسے تېر دے چه د ټولو مؤرخينو په اتفاق د نسل او ژبې له مخه پښتون منلے شوے دے اګرچه د هندوستان د خلجي خاندان په حقله هم موږ په تيرو پاڼو کښې د تاريخي شواهدو په رڼا کښې دا خبره ثابته کړې ده- چه د هندوستان خلجيان او د پښتنو خلجيان يو خلق او د نسل له مخه د هيا طله او پښتنو نه مخلوط وو-

څه رنګ چه د هند خلجيانو د محمد غوري په زمانه کښې په اول ځل د بنګال و بهار په علاقه د بختيار خلجي په مشرئ کښې د خلجيانو وړومبنے اسلامي رياست تشکيل کړے وو- دغه رنګ د لودي تېر او مشر ،، شيخ حميد،، لودي د هندو شاهانو د مشهور راجا ﺟﮯ پال په وخت کښې د ملتان او لمغان په علاقو کښې د يو جاګيردار حيثيت لرلو- او د سبکتګين په زمانه کښې شيخ حميد لودي د ملتان جائز والي اومنلے شو- دغه شان په ملتان کښې د شيخ حميد په مشرئ کښې د لوديانو وړومبے رياست قائم شو چه د محمود غزنوي په زمانه کښې ختم شو-

شيخ حميد لودي څوک وو؟ کله پيدا شوے وو؟ څه رنګ ئے اقتدار حاصل کړو؟ او کله وفات شو؟ دا داسے سوالونه دي چه واضح جواب ئے موږ نهٔ شو کولے- البته د تاريخ فرشته او پټے خزانے نه چه د شيخ حميد او د هغهٔ د کورنئ څه لږ ډېر حالات معلوميږي- هغه په لنډه ډول څه داسے دي:-

د فرشتے مطابق شيخ حميد لودي د راجه ﺟﮯ پال د لورې نه د ملتان او لمغان جاګيردار وو- او د سنه ۳۵۱ه نه سنه ۳۶۵ه پورے چه د مغرب د لورې نه په راجا باندے کوم حملے شوے وے- په هغ کښې د راجا په کومک ولاړ وو- ولے هر کله چه سبکتګين د غزني په تخت کښيناست-

نو د هغهٔ سره ئې صلحه اوکړه. سبکتگین هغه د ملتان جائز والی اومنلو. د شیخ حمید نه پس د هغهٔ ځوی « نصر » د ملتان حکمران شو. دغه وخت په ملتان کښې د ملاحده او اسماعیلی فرقې عقائد خوارهٔ شول. او شیخ نصر هم دے عقائدو ته مائل شو. د « شیخ نصر » نه پس د هغهٔ ځوی ابوالفتح داؤد ته حکمرانی اورسیدله. دغه وخت د سلطان محمود غزنوی زمانه وه. سلطان محمود په کال ۳۹۶ھ کښې په ملتان حمله اوکړه. مګر ابوالفتح داؤد سره ئې صلح اوکړه. داود د اسماعیلی عقائدو نه توبه اوویستله او د محمود خراج ئې په ځان اومنلو. ولے داؤد په خپله معاهده قائم پاتې نهٔ شو. او دوباره ئې اسماعیلی عقائد اختیار کړل. چنانچه محمود څو کاله پس (د ۴۰۳ھ نه اول) بیا په ملتان حمله اوکړه. ملاحده ئې ټول تالا ترغا کړل. داؤد ئې گرفتار کړو. او غزنی ته ئې بندیوان را وستلو او د سلطان په قید کښې مړ شو. دغه شان د ملتان ریاست په غزنوی حکومت کښې شامل شو.[1]

د « فرشتې » مطابق شیخ حمید لودی افغان « پښتون » وو. ولے د داوسنۍ زمانې څښې فاضلانو د ملتان د دے حکمران ټبر د نوموړو په وجه د اخلق نسلاً عرب ګڼلی دی. لیکن حقیقت داسے نهٔ دے. د فرشتې د قول تصدیق د پټې خزانې نه هم کیږی. د پټې خزانې مؤلف د کامران خان سدوزی « د کلید کامرانی » نومے کتاب (چه د کال ۱۳۸۱ھ تالیف دے.) په سند او د دے کتاب سند د « شیخ احمد بن سعید لودی » « اعلام اللوزعی فی اخبار اللودی » نومے کتاب دے چه په کال ۶۸۶ھ کښې لیکلے شوے وو. داسے وائی چه شیخ حمید لودی په ملتان کښې بادشاه شو. نو هغهٔ خپل وراره چه « شیخ رضی » نومیدهٔ[2] « پښتون خوا » ته په دے غرض رااولیږلو چه د غرونو پښتانهٔ اسلام ته راواوړی. چنانچه « شیخ رضی » دوه کاله د کسی غر په زنځیرئ کښې ابادو پښتنو ته د اسلام تبلیغ کاوه. او د هغهٔ په کوششونو ډیر پښتانهٔ اسلام ته راواوړیدل. په دغه اثنا کښې شیخ حمید لودی وفات شو او د هغهٔ په ځائې د هغهٔ ځوئې نصر د ملتان حکمران شو. « شیخ نصر » د ملاحده مبلغینو په اثر کښې د ملاحده عقائدو ته مائل شو. او د دوی عقائد ئې اختیار کړل. د الحاد ترویج ئې شروع کړو. « شیخ رضی » چه سوچه مسلمان وو. هرکله چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغهٔ خپل تربور « شیخ نصر » ته دا شعرونه اولیږل.

## د شیخ رضی اشعار چه نصر بن شیخ حمید لودی حاکم ملتان ته ئې لیږلی وو

د الحاد په لور د تر پلـــل[3] گــروه[4] زموږ دِ کـــوګ[5] را وه

---

[1] فرشته ص ۱۹ تا ۲۶. [2] دا لفظ اوس د ترپلودل په شکل کښې مستعمل دے په معنی زنور په ۳۶۱ (ع)

موږ روڼولی[۱] په زیارنه[۲] — تا په تور وتو[۳] راوه
لرغون ولے ګروهیدلے[۴] — چه د ګو بنی اړاوه[۵]
هغه ګروه د اوس آره[۶] کړه — چه پلرو د رڼا[۷] وه
لودی ستا په نامه سپک شو — که هرڅو مو درسناوه
نصره! نه موځ له کهاله[۸] — لودی نه ځے په کاوه[۹]
زموږ رغا[۱۰] ده ستا له ګروه — د ورځلوی[۱۱] په رغاوه

شیخ احمد لودی په خپل کتاب « اعلام اللوزعی فی اخبار اللودی » کښے داسے وائی چه د شیخ رضی د دے شعرونو په جواب کښے « شیخ نصر » دا شعرونه هغه ته راولیږل.

ے

دالحاد په تور تورزن[۱۲] سم — زه لرغون خو ملحد نه یم
زما د ښمنه[۱۳] هسے تور راکړے — که ملحد یم د ښمنه یم
له اسلام نه تر پلمه[۱۴] — تورانو څخه تر پله یم
ګروهے هغه لرغونے دے — اوس هم ګروږ[۱۵] په لرغونه[۱۶] یم
د اسلام پرهسک[۱۷] به ځانم[۱۸] — و تورانو[۱۹] ته تیاره یم
د لودی څوځ سنتی[۲۰] یم — د حمید په لوړ کهاله یم
تورانی[۲۱] د ښمن چه وائی — زه له ګروه[۲۲] په آرا یم
داځ تور تاسو دروهوی[۲۳]، — زه مومن ستاسو په تله[۲۴] یم
د ښمنو وینا[۲۵] وے مخبره[۲۶]. — زه لودی یم څو زه[۲۷] یم

---

(پاتے حاشیه له ۳۶۲ مخ) د زغلیدو ، تنبتیدلو ، تهوپ وهلو او مائل کیدلو لکه په دے تپه کښے ے له سپینے توریے نه د تر پلود - په بیګانیځ د کړی څله پښیمانه یه - [۳] په معنے د تهولی - مراد مذهب . [۴] کورول - باطل کول . ورانول - اوس د استعمال نه وتلے دے . [۱] روڼل - مصدر - اوس د روڼول په شکل کښے مستعمله دے - « روڼولی » په معنیٰ د روښن - مشهور . [۲] زیارنه - د زیارل مصدر نه حاصل مصدر په معنیٰ د کوشش - زیارمند کوشش کوونکے . [۳] تورول - داغداره کول - تهمت زده کول (تور - تهمت - الزام) - [۴] ګروهیدل - اوړیدل - مائل کیدل - اختیارول ، [۵] اړول - بدلول - [۶] آره کول - بدلول - پریښودل - [۷] رڼول - روښن کول - مراد ترقی ورکول - څورول - [۸] کهاله - تبر - [۹] کول - عمل - [۱۰] رغا - رغول - مراد بیزاری - قطع تعلق - [۱۱] ورځ لوی - لویه ورځ - مراد روز قیامت - [۱۲] تورزن - داغداره ، تهمت زده - [۱۳] دښنه - دښمن (نور په ۳۶۴ مخ)

د شیخ رضی او شیخ نصر د دے اشعارو نه دا خبره واضحه شوه. چه د ملتان دا لودی ټبر پښتون وو. او ژبه ئے پښتو وه. او کومو فاضلانو چه دا ټبر نسلاً عرب ګڼلے دے هغوی ته غلط فهمی شوی ده. د لودیانو دا وړوکے ریاست لکه چه او وئیلے شول د محمود غزنوی دلاسه ختم شو. لیکن د دے وخت نه د ملتان سره د پښتنو تعلق قائم شوے وو. او پښتانهٔ په ډیر شمیر کښے د ملتان په علاقه کښے آباد شوے وو. د فیروز شاه تغلق په زمانه کښے د پښتنو تګ د ملتان او لاهور په لور نور هم زیات شوے وو. چنانچه د تیمور د حملے په وخت کښے په دے علاقو کښے ښه شمیره پښتانهٔ بالخصوص نیازی او لودی قبائیل آباد وو. او دے د تیمور د نمسی پیر محمد سره شدید جنګونه کړی وو.

وړاندے مو په هند باندے د تیمور د حملے ذکر کړے دے. تیمور په خپلے واپسیٔ کښے په خپلو مفتوحه هندی علاقو د خپل نائب په توګه سید خضر خان حاکم مقرر کړے وو. د سید خضر خان په کورنیٔ کښے د دهلی حکومت اووهٔ دیرش کاله پاتے شو. ولے په دے خاندان کښے یو بادشاه هم د څه امتیاز خاوند نهٔ وو. د دوی حکومت صرف په پنجاب او د دهلی د خوا وشا علاقو کښے محدود وو. د سید خضر خان په خاندان کښے آخری بادشاه عالم شاه نومیدهٔ. چه ډیو کمزوری طبیعت خاوند او په ۱۴۴۵ء کښے تخت نشین شوے وو. د دهٔ په وخت کښے د سلطنت دهلی وسعت او طاقت دومره محدود شو چه د هغے انداز د دے متل نه واضح ده: بادشاهی شاه عالم از دهلی تا پالم: د دهلی تخت د شاه عالم نه لودیانو ته اورسیدهٔ. د لودیانو د دے دوئم ځلی حکومت بانی بهلول لودی وو. چه په ۱۴۵۱ء کښے د دهلی د سلطنت مالک شو.

د بهلول لودی نیکهٔ بهرام نومیدهٔ. چه د سلطان فیروز شاه تغلق په زمانه کښے د نورو پښتنو په شان ملتان ته راغے او د ملک مردان شاه، سره نوکر شوے وو. د بهرام پنځه

---

(پاتے حاشیه له ۳۶۳ مخ) ۱۴ے ترپلمه زغلم. ۱۵ے کرور مضبوط. سخت ۱۶ے لرغون. لرغونے. اولنے. پخوانے. سابق ۱۷ے اسمان. ۱۸ے ځلیږم نه. رڼا به کووم. مراد قائم به یم. ۱۹ے تورانی. تهمت لګوونکی. حاسدین ۲۰ے سنتی. اهل سنت والجماعت ۲۱ے تورانے. حاسد. تور پورے کوونکے. ۲۲ے ګروه. ټولے. مراد مذهب. ۲۳ے دروهوی. فعل حال چه اوس، دروهی وئیلے شی. مصدر دروهل. دوکه کول. غلول. ۲۴ے تلهٔ په معنیٰ د رفتار. مراد. قاعده. روش. ۲۵ے ویناوے. وینا ګانے. ۲۶ے مغزه. مه غزه. مراد مه اوره. دالفظ مصدر غزل په شکل کښے د استعمال نه وئیلے دے. لیکن د متوسطینو په کلام کښے نغوږل په شکل کښے دے اوریدلو، په معنیٰ موجود او مستعمل وو. ممکنه ده چه مه غزه د مه نغوږه مختلف شکل وی. نغوږل، د نغوږل په شکل کښے هم خوشحال خان مرحوم استعمال کړے دے لکه ے ښهٔ کړه. ښه کړه د نیک خوا خبره نغوږه ۲۷ے پټه خزانه ص ۶۹-۶۷

ځامن وو- (۱) اسلام خان چه وروستو په اسلام شاه مشهور شو- (۲) ملک کالا (د بهلول پلار) (۳) ملک فیروز- (۴) ملک محمد- او (۵) ملک خواجه- د بهلول پلار د نیازی پښتنو سره په یو جنګ کښې مړ شو- مورئې د وړاندې نه مړه شوې وه- نو بهلول په وړوکوالی کښې د مور پلار د سورې نه محروم شو- په دې ورځو کښې اسلام خان ډېره ترقی کړې وه- او دولس زره پښتانهٔ ئې چه اکثر د دهٔ د خپلې قبیلې خلق وو- د دهٔ نوکران وو- اسلام خان د سید خضرخان د لورې نه د سرهند حاکم وو-

یتیم بیسیر بهلول چه په وړوکوالی کښې په "بلو" مشهور وو- د خپل تره اسلام خان په تربیت کښې لوئې شو- او په یو جنګ کښې ئې دومره شجاعت ښکاره کړو چه اسلام خان خپله لور په نکاح ورکړه- اسلام خان د بهلول د لیاقت او شخصیت نه دومره متاثر وو چه د خپل وفات په وخت کښې ئې سره د دې چه ځامن ئې لرل. د بهلول د مشرئ وصیت اوکړو- ولې د یو مشر په وفات کیدو او د یو نوی مشر د انتخاب په موقع اکثر په پښتنو کښې پرې جنې جوړیږی. د اسلام خان د وفات نه پس هم په دې کورنئ کښې د مشرئ په مسئله اختلاف پیدا شو- یوه ډله د بهلول په پره شوه- بله ډله د ملک فیروز (چه د بهلول تره وو- په مرسته اوګرځیدله- او دریمه د اسلام خان د ځوی قطب خان مرکزی شوه- ولې د بهلول ډله مضبوطه وه- اخر د هغهٔ تره فیروز خان خو د هغهٔ په مشرئ رضا شو- ولې قطب خان ورسره تربور ولی اوپالله- او د دهلی بادشاه محمد شاه ته د بهلول برخلاف فریادی لاړ- محمد شاه خو د لودیانو په دې کورنئ اختلاف کښې خپل خیرلیدلو- نو هغهٔ د قطب خان په مرسته کښې خپل یو امیر "ملک سکندر تحفه" د یو فوځ سره سرهند ته اولیږلو- او جرت ګهکړ ته ئې هم د دوی د امداد حکم ورکړو- چنانچه ملک سکندر، جسرت ګهکړ او قطب خان سرهند ته راغلل- چه "فیروز او بهلول" د دې واقعاتو نه خبر شول نو خپله بې اتفاقی ئې لرې کړه- او د خپل ننګ ناموس په فکر کښې شول- ولې په دوی کښې دومره طاقت نهٔ وو چه د حمله آور فوځ مقابله ئې کړې وې- نو د آل و عیال سره غرونو ته اوتښتیدل- "جرت" او "ملک سکندر" چه میدان خالی اولیدو نو بهلول او فیروز ته ئې پیغام اولیږلو- چه موږ خو ستاسو په مینځ کښې د روغ کولو په غرض راغلي یو- تاسو هسې په خپل ځان باندې خپل کورونه وران کړل- تاسو راشئ چه په خپلو کښې جرګه اوکړو- او ستاسو دا اختلاف لرې کړو- او دا پیغام ئې د قرآن په قسم مضبوط کړې وو-

د دې پیغام په جواب کښې ملک فیروز خپل ځوئې شاهین خان او بهلول د آل و عیال د حفاظت په غرض په غرونو کښې پریښودل او په خپله د جسرت سره د جرګې په غرض

سرهند ته راغۍ ـ ولې ملک سکندر او جسرت خپل لوظ قول سیرکړو. ملک فیروز ئې سره د هغهٔ د ملګرو قید کړو. او د نورو پښتنو د نیولو د پاره ئې فوځونه اولېږل. چه بهلول او شاهین دد ے واقعاتو نه خبر شول نو بهلول د آل و عیال سره د غرونو مینځ ته لاړ. او شاهین خان د خپلو ملګرو سره د شاهي فوځونو سره په جنګ شو. په د ے جنګ کښې شاهین خان د پښتنو ډیرو ټلو سره اووژلے شو. او څنې پښتانهٔ د جسرت د فوځونو په لاس کښې بند یوان شول. جسرت دد ے مړو پښتنو ټلو سرونه د ځان سره سرهند ته راوړل. او د ملک فیروز په مخکښې ئې کیښود ل. او د هر مقتول نوم او نور حالات به ئې د ملک فیروز نه پښتل. او فیروز به جواب ورکولو. په د ے سرونو کښې د ملک فیروز د خپل ځوی شاهین خان سرهم وو. چه داسر ئې فیروز ته وړاند ے کړو نو هغهٔ ورته اووے چه دا ټلیے نهٔ پیژنم. ددهٔ په عقله ورته جسرت اووے افسوس د ے چه دا ټلیے مړشو. د ے یو خو زمرے وو. د زمری په شان جنګیدلے د ے. او زهٔ ددهٔ د میړانۍ بیان په الفاظو کښې نهٔ شم کولے. د غه وخت ملک فیروز تېنګ نهٔ شو وے ژړل او وے وئیل ”دا زما ځوئے شاهین خان د ے.“ او اول ے ځکه ددهٔ د پیژندګلو نه انکار کړے وو چه زما خیال ووچه هسې نه چه په جنګ کښې ئې نامردي کړی وی. او زما نوم ئې شرموئے وی. وړاند ے فیروز اووئیل! چه په د ے سرونو کښې د خپل وراره ”بهلول“ سر نهٔ وینم. او دا ے خیال د ے چه هغه یو ځوانمرد او غیرتی ټلیے د ے. او د ے بدل به څه رنګ چه حق وی زر واخلی. غرض دد ے واقعاتو نه پس سرهند د ملک سکندر په تحویل کښې راغلو جسرت د خپل فوځ سره پنجاب ته بیرته لاړ. ملک فیروز په دهلی کښې د محمد شاه قیدی او قطب خان د محمد شاه درباری شو. او بهلول د خپل بدل اخستلو په غرض د خپلې چارے په فکر کښې لګیا شو.

ملک بهلول د خپلو یارانو دوستانو نه په قرض پور روپۍ واخستے. او هغه ئې په پښتنو ټلو ویش کړے. د ځان سره ئې یو جمیعت پیدا کړو. او بیا ئې د خوا وشا په علاقو دست اندازی شروع کړه. بهلول یو دوراندیش او مدبر بنیادم وو. نو ځه چه به ئې پیدا کول هغه به ئې په خپلو ملګرو ویشل. دد ے نتیجه دا شوه چه په لږ و ورځو کښې ډیر پښتانهٔ او غه مغل د هغهٔ د جنډ ے لاند ے جمع شول. په دغه ورځو کښې ملک فیروز هم د محمد شاه دقید نه راوتښتید و. او قطب خان هم په خپلو کارونو پښیمانه شو. اوس د دوی په مینځ د کورنۍ مخالفت ختم شوے وو. او د خپلې چارے په تابیا کښې په سرګرمۍ لګیا وو.

دد ے نه پس بهلول په سرهند حمله اوکړه. او وے نیولو. سید محمد شاه د هغهٔ مقابلے ته

خپل وزیر حسام خان راواولیږلو ـ د دوئ تر مینځه د خضرآباد په پرګنه کښې د «لده» په مقام جنګ اوشو ـ په جنګ کښې حسام خان ماتې اوکړه ـ او د بهلول د توره زور خلقو اومنلو. بهلول به د هلکوالئ نه د بادشاهئ خوبونه لیدل ـ او د هغهٔ دا یقین پیدا شوے ووچه زهٔ به یو ورځ بادشاه کیږم ـ د دے خود اعتمادئ په وجه هغهٔ کل خپل خپلوان او نور پښتانهٔ د ځان سره راغونډ کړل او د پانی پت پورے علاقه ئے اونیوله.

چه د بهلول په خپل طاقت یقین پیدا شو ـ او په خپلو متو مضبوط شو. نو د بادشاه په خدمت کښے ئے د خپل اخلاص و عقیدت په ډول یو داسے درخواست اولیږلو ـ چه «د شاهی خدمت نه زما د لرے والی سبب دا دے چه وزیر حسام خان زما نه ناراض دے ـ او په دے وجه زما د هغهٔ نه خطره کیږی ـ که چرے بادشاه حسام خان د ځان نه لرے کړی ـ او د هغهٔ په ځائے حمید خان وزیر کړی نو زهٔ به تکه د یو مربئ په شان خدمتګارئ ته تیار شم.» محمد شاه د بهلول دا عرض سمدستی منظور کړهٔ ـ حسام خان اووژلے شو ـ او د هغهٔ په ځائے حمید خان وزیر شو ـ بهلول ته بادشاه خپل ځوئے اووئیلو ـ او بهلول هغه په پلار اونیولو. محمد شاه په کال ۸۴۹ھ کښے وفات شو ـ

د محمد شاه په ځائے د هغهٔ ځوئے سید علاؤالدین د دهلی بادشاه شو ـ دغه وخت هغه د دهلی برائے نام بادشاه وو ـ علاؤالدین د پلار نه هم زیات کاهل او آرام پسند بنیادم وو. په دے ورځو کښے په سیاسی رنګ کښے د تخت دهلی دعویدار په حقیقت کښے دوه کسه وو ـ یو حمید خان او بل بهلول لودی ـ د بادشاه د نالائقئ په وجه ټول طاقت دامیرانو په لاس کښے وو ـ او د حمید خان پره په بهلول درنه وه ـ په دے سبب به بهلول په ظاهره کښے د حمید خان سره روغه ساتله ، حمید خان هم د بهلول په اکرو پوهه وو ـ دواړو په خپل مینځ کښے د شطرنج لوبه کوله ـ او یو بل ته په ساو کښے ناست وو ـ یوه ورځ حمید خان بهلول ته اووے چه که تهٔ بادشاه شے او ما خپل وزیر کړے نو زهٔ به ډیر خوشحال شم. ولے بهلول ورته اووے چه زهٔ یو سپاهی سړے یم ـ زما نه د خپل جائيداد انتظام نهٔ شی نو د بادشاهئ کار به څه رنګ سرته رسوم ـ ښه به داوی چه تهٔ بادشاه شے او ما خپل سرلښکر کړے.

غرض دغه شان بهلول د حمید خان سره په چل ول وخت تیرولو او د هغهٔ کور ته به د هغهٔ د سلام په عرض ورتلو ـ یوه ورځ حمید خان د بهلول دعوت کړے وو ـ په دے ورځو کښے څنے تازه پښتانهٔ د «روه» نه بهلول ته راغلی وو ـ بهلول دا خلق هم د خپلو عزیزانو په شکل کښے دعوت ته روان کړل ـ او دوی ته ئے د وړاندے نه پوهه کړی وو چه تاسو داسے

حرکتونه اوکړئ چه د حمید خان دربانده د ډیرو وحشیانو او ساده ګانو ګمان او شي. دغه پښتانه چه د بهلول سره د حمید خان دیرے ته ورغلل نو دوئ خپل پیزارونه چا په خپلو ځا درونو پورے اوتړل. چا په تاخونو کښے کیښودل. او ځنو په ترخ کښے اونیول. حمید خان چه دا واقعه اولیدله. نو پوښتنه ئے اوکړه چه داولے؟ دوئ ورته اووے چه زموږ پیزارونه به څوک پټ کړی. بیا چه دوی قالینونو ته اوکتل. نو حمید خان ته ئے اووے چه که د دے فرشونو نه موږ ته توټے اوشلوے او راځے کړے نو موږ به ترنه خپلو ځامنو ته ټوپیاځ جوړے کړو او خپل وطن ته به ئے اولیږو. په دے به زموږ په خپل وطن کښے ډیر نوم او عزت پیدا شی او چه زموږ نور وروڼه عزیزان د دے نه خبر شي نو هغوی به دا خیال اوکړی چه خان زموږ ډیر قدر کړے دے. حمید خان ورته اووئیل چه تاسو ته به د زربفتو او مخملو توټے درکړم. د هغ نه ټوپیاځ جوړے کړئ. د پان او عطرو خوانچے چه راغلے نو دوی بیا د ((خرتوب)) کارونه شروع کړل. چا به عطر څټل. چا به د پان نه تښه چونه خوړله. او چه ځُله به ئے اوسوزیدله نو په فرشونو به ئے توکانی توکل. غرض دا سے د شوګانو نخرے ئے اوکړے چه حمید خان ورته حیران پاتے شو. او بهلول به په ظاهره کښے په دے خبرو ځان پیکه پیکه او کچه کچه ښکاره کولو. او بیا ئے حمید خان ته اووے چه دوئ خو بانړیځیان او غرځنی دی. دوی دا سے شاهانه دعوتونه او طعامونه چرے په خوب کښے هم نه دی لیدلی. دوی خو بے د خوراک او مرګ ژوبلے نه بغیر په بل کار نه پوهیږی. دوئ د دا سے مهذب مجلسونو د شاملولو قابل نه دی. ولے زما ترنه خلاصے نه کیږی ځکه چه زما وروڼه عزیزان دی. د بهلول دا چل کامیاب شو. او د حمید خان په زړه کښے یقین پیدا شو چه پښتانه خو بیډ و غرونه دی. او د حلوا په یوه رکیبئ د دوی خله بندیدلے شي.

حمید خان په زړه کښے د بهلول نه ویریدلو. نو هغه به په وس د بهلول سره ډیر سړی په خپل ځانے کښے نه پریښودل. یوه ورځ د بهلول په صلاح سره چه هغه د حمید خان سلام ته تلو نو هغه ډیر پښتانه د ځان سره بوتلل. بهلول خو د څوکسو سره دننه لاړ ولے د حمید خان ملازمانو دا نور پښتانه د تلو نه منع کړل. په دے خبره د دے پښتنو بهلول ته په وازکومی کنځلے شروع کړے. او وئیل ئے چه څه رنګ بهلول د حمید خان نوکر دے دغه شان ئے موږ هم نوکران یو. نو بیا بهلول زموږ نه په څه زیات دے چه هغه خو د خان سلام ته پریښودلے شی. او موږ د نه شو پریښودلے. چونکه حمید خان د پښتنو په خوی بوی د وړاندے نه پوئے شوے وو. نو خپلو نوکرانو ته ئے اووے چه ټول راپریږدئ. غرض

ټول پښتانهٔ دننه لاړل. او د حمید خان د ھر سړی سره دوه دوه درے درے کښیناستل ھرکله چه بهلول پوھه شو چه پښتانهٔ ډیر دی نو اشاره ئے اوکړه. د ھغهٔ تربور قطب خان د ترخ نه زنځیر راوویستلو او حمید خان ته ئے اووے چه چونکه ستا نمک موخوړلے دے نو وژنو دِ نه ولے ښه به داوی چه باقی عمر د خدائے په عبادت کښے تیر کړے. د دے نه پس ئے حمید خان قید کړو. او خپلو سړو ته ئے اوسپارلو. دغه وخت کښے سلطان علاؤالدین د حمید خان د لاسه په بداؤن کښے ناست وو.

بهلول چه د حمید خان د کشالے نه اوزګار شو نو سید علاؤالدین ته ئے پیغام او لیږلو. چه حمید خان مے د بادشاه د پاره قید کړے دے. اوس د بادشاه خپل تخت سمبال کړی. ولے علاؤالدین ورته جواب رااولیږلو چه "پلار مے تا ته خوئے وئیلی وو نو زما ھم مشر ورور ئے. د دهلی تخت دِ ستا مبارک وی. ما ته دغه بداؤن پریږده چه دا باقی عمر په آرام تیر کړم". د دے نه پس علاؤالدین په بداؤن کښے پاتے شو. او بهلول دوړومبی خور په اوولسم په کال ۸۵۵/۱۴۵۱ کښے د دهلی په تخت کښیناست. خطبه او سکه ئے په خپل نوم کړه. او سلطان بهلول ئے خپل لقب کړو

د تخت نشینئ په اول کال (۸۵۵/۱۴۵۱ع) کښے بهلول ته څنے مشکلات پیدا شول. ولے ډیر زر ھغهٔ په دے مشکلاتو قابو بیا مونو. د سید علاؤالدین څنے امیران د لودیانو په بادشاهئ ناراضه وو. ولے علاؤالدین د جنګ سړے نهٔ وو. او نهٔ د ھغه نه دا طمع کیدے شوه. نو په دے وجه دا امیران محمود شاه والئ جونپور څخه لاړل. د محمود شاه ښځه د علاؤالدین لور وه. او دے ښځے د دهلی تخت خپل حق ګڼلو. چنانچه د دے امیرانو په تحریک او د خپلے ښځے د زبردست خواهش په بنا محمود شاه شرقی د دهلی د فتحے اراده اوکړه. او په کال ۸۵۶ھ/۱۴۵۲ع کښے د یو لوئے لښکر سره چه یو زر خوور کښے تش جنګی ھاتیان وو. د دهلی په اراده روان شو. دغه وخت بهلول د لښکر د یوے لوئے حصے سره د پنجاب او ملتان د انتظام په غرض په دیبال پور کښے وو. او په دهلی کښے ھغهٔ خپل ځوئے بایزید (چه وروستو د بهلول په ژوند کښے وفات شو.) د یو څو امیرانو سره پریښے وو. په دهلی کښے د پښتنو ډیر لږ لښکر وو. د محمود شاه شرقی فوځونو د دهلے محاصره کړو. او قریب وه چه دهلے سقوط اوموی لیکن دغه وخت د یوے پښتنے میرمنے عقل او دور اندیشئ لوئے کار اوکړو. دا میرمن د مرحوم اسلام خان ښځه بی بی متو وه. دے ځوانمردے ښځے خپلو سپاهیانو ته ډیر ډاډ ورکړو. او د دشمن د غلُولو د پاره ئے ښځو ته د سړو جامے ورواچولے. وسلے ئے

ورکړے. او د فصیل په دیوالونو ئے کښینوُلے. په دے دستورئے د دشمن په نظر کښے د خپل فوځ شمیر زیات ښکاره کړو.

بهلول په دیبال پور کښے د دهلی د محاصرے نه خبر شو. هغهٔ دا غوره اوګڼله چه تر څو خپلے مټے مضبوطے نهٔ وی نو د پردو په اسره بادشاهی کول د منت یاری ده. په دے غرض هغهٔ «روه» ته خپل استاذی اولیږل. او د یو شاهی فرمان په ذریعه ئے د «روه» پښتنو قبائیلو ته د هند د راتلو دعوت ورکړو. په دے فرمان کښے هغهٔ پښتنو ته دا وئیلی وو چه «ما ته خدائے پاک د هندوستان حکومت راکړے دے. ولے په هندوستان هغه سړے حکومت کولے شی چه هغه د قام او قبیلے خاوند وی. په دے بنا ټولو پښتنو ته پکار دی چه هند ته راشی. فوځی ملازمت اختیار کړی. او یو طرف ته جاګیر حاصل کړی او د آرام او هوسائۍ ژوند تیر کړی. او بل طرف ته د خپل قامی حکومت د حفاظت په لړ کښے د مضبوطو دشمنانو د پاره یو مضبوط دیوال اوګرځی.»

د دے فرمان په جواب کښے پښتانهٔ، لودی، لوهانی، نیازی، مروت، بیټنی، سړبنی او کرلانی قبائیل هند ته راروان شول. ولے د دوی په رارسیدو څو وخت لګیدو. بل طرف ته د دهلی پښتانهٔ د محمود شاه شرقی د محاصرے د لاسه تنګ شو. او دے خبرے ته آماده شو چه قلا محمود شاه ته حواله کړی. د قلا د حواله کولو خبرے اترے شروع شوے. فیصله په دے اوشوه چه محمود شاه به محصورینو ته هیڅ نقصان نهٔ رسوی. د دے فیصلے مطابق د بایزید د لوری یو سید صاحب «دریا خان لودی» ته چه د بهلول نه په څه خبره ناراض وو. او د محمود شرقی د فوځونو سرلښکر وو. د قلا کنجیانے یوړے. د کنجیانو حواله کولو نه اول سید صاحب دریا خان ته دا اووے چه محمود شاه ستا څه ګی؟ هغهٔ ورته اووے چه هیڅ نه. زهٔ د هغهٔ نوکر یم. او د نوکرئ حق ادا کووم. بیائے ورنه پوښتنه اوکړه چه بهلول دِ څه ګی؟ دریا خان اووئیل بهلول مے عزیز دے. هغه هم یو پښتون دے او زهٔ هم پښتون یم. په دے خبره سید صاحب کنجیانے کینسودلے او ورته ئے اووے بس اوس د خپلو میاندو او خوینډو پرده او ننګ شرم ساتل ستا په غاړه دی. د سید صاحب دا خبره بے اثره نهٔ شوه. دریا خان ورته اووے سید صاحب دغه د ننګ شرم خبره زما په سترګو کښے عزیزی کئ د قلا فتح کول څو څه ګران نهٔ وو. ولے زهٔ څه اوکړم. بهلول ډیر اتال شو څو خیر تهٔ کنجیانے بیرته یوسه. او اوګوره چه زهٔ څه کولے شم.

په دغه ورځو کښے بهلول ته د «روه» نه پښتانهٔ رارسیدلی وو. او هغه د یو لوئے لښکر

سره د دهلي په نيت راروان شوي وو. » دريا خان لودي « محمود شاه شرقي ته اووې چه بهلول ديو لوئې لښکر سره د دهلي په نيت راروان شوي دې. ښه به داوي چه اول د هغهٔ مقابله اوشي ځکه چه د دهلي فتح کول خو څه ګران کار نهٔ دې. د محمود شاه زړهٔ ته هم دا خبره پريوتله. او ديرش زره سپاهيان او غلوينبت هاتيان ئې د بهلول مقابلې ته اوليږل. دريا خان لودي هم ورسره وو. د بهلول سره څوارلس زره لښکر وو. دې نريلې په مقام دواړه فوځونه سره مخامخ شول. قطب خان لودي چه ډير رسا ويشتونکے وو. يو مست هاتي ئې په يو زهري غشي اوويشتو. او بے کاره ئې کړو. بيائې په لويه چغه دريا خان لودي ته اووې ستا ميندې خويندې د دهلي په قلا کښې ګيرې دي. او تهٔ د پردو د پاره د خپلو سره توره وهې. ددې په جواب کښې دريا خان اووئيل چه که ما پسې هبه نهٔ کوي نو زهٔ به بے جنګه لاړ شم. قطب خان خپل لوظ په قسم مضبوط کړو. او دريا خان دپښتولۍ په ننګ دجنګ دميدان نه لاړ. د دريا خان په تلو « محمود شاه شرقي فوځونه اوتښتيدل. او د هغهٔ يو امير فتح خان هروي اووژلے شو. ددې شکست په وجه د محمود شاه شرقي زړهٔ هم مات شو. او د نور جنګ نه بغير جونپور ته لاړ. بهلول په فتح مندئ سره دهلي ته راغے. او په دې فتح هغه نور هم مضبوط شو.

بهلول د دهلي سلطنت د پښتنو په مړانه ډير مضبوط کړو. او د شپږ ويشت کاله جنګ و جدل نه پس ئې د جونپور سلطنت هم په دهلي کښې شامل کړو. جونپور فتح کولو نه پس هغهٔ په دهولپور حمله اوکړه. او د سخت کشت وخون نه پس راجا شکست اوخوړ. او آخر ته ئې صلح اوکړه. په دغه ورځو کښې په سنده کښې احمد خان بهټي يو ډير طاقتور سردار د حاکم ملتان نه بغاوت اوکړهٔ. دا خبره چه بهلول ته اورسيده نو هغهٔ خپل ځوئے بايزيد د ديرش زره لښکر سره ملتان ته اوليږلو. بايزيد د هغه ځائے نه په سنده حمله اوکړه. ولے د احمد خان قابو کول يو ګران کار وو. د دهٔ يو وراره وو چه نورنګ خان نوميدهٔ ډير زړور او توريالے ځوان او په جنګ کښې لکه يو شين زمرے وو. نورنګ خان په دے جنګ کښې اووژلے شو. وائي چه دا نورنګ خان به يو پېغلې جينۍ مئين وو. او د هغې هم ورسره ډيره زياته مينه وه. د جنګ په وخت کښې به هم دا جينۍ هغه د ځان سره په اس سوره ګرزوله. څه وخت چه نورنګ خان مړ شو نو دے جينۍ د هغهٔ د فوځونو کمان په خپل لاس کښې واخستو. او په دومره ځوانمردئ او جنګيدله چه د پښتنو ټول فوځونه تښتيدل نه تښتول. ولے هرکله چه پښتنو ته دا حال معلوم شو چه دوئ د يوې ښځې نه تښتيدلي دي نو

غیرت ورغی - دوباره ئې حمله اوکړه - او د یوې سختې مقابلې نه پس ئې هغې ته شکست ورکړو او د احمدخان فوځونه ئې تالا ترغا کړل.

سلطان بهلول د اته دیرش کاله حکومت نه پس په کال سنه ٨٩٤ھ/١٤٨٩ء کښې د اتیا کاله په عمر کښې وفات شو. هغه یو انصاف پسند، متواضع او بار اوړونکے انسان وو. د شریعت د احکامو او د دیانت د قاعدو او اصولو پابند وو. چرې به ئې سوالګرے تش نهٔ پریښودلو. مدام به د غریبانانو په تالاش کښې وو. هغه یو مهربان دوست او متحمل دشمن وو. د روند پښتون او منصف حاکم وو. چرې به په تخت نهٔ کښېناستو. بلکه همیش به په فرش ناست وو. د پښتنو امیرانو سره به هغهٔ د ورورولۍ او عزیزولۍ سلوک کولو. هغهٔ به د خپل قول و فعل نه دا نهٔ ظاهروله چه هغه په نورو پښتنو څه امتیاز لری. که چرې یو امیر به د هغهٔ نه ناراض شو نو بهلول به د هغهٔ مکان ته لاړ. او د هغهٔ به ئې طبع تسلی اوکړه. او ورته به ئې اووے چه که ستا په خیال کښې زهٔ د دے منصب (بادشاهۍ) قابل نهٔ یم نو ما ته څه بل کار حواله کړئ - زهٔ به هغه کوم. د دے خویونو په برکت هغهٔ ټول پښتانهٔ خپلے خوا ته راغونډ کړی وو هغهٔ به د خپلو سپاهیانو ډیره دلجوئ کوله. او د هغوی د ضروریاتو او آرام و اسائش به ئې ډیر خیال ساتلو.

د بهلول لودی په حقله ښاغلے ډاکټر سرشفاعت احمدخان مرحوم داسے لیکی. د بهلول نوم د هندوستان په تاریخ کښې د لوړ مقام موندلو حق لری. هغهٔ ته خپلو سیاسی مصروفیاتو دا موقع ورنکړه چه د ملک د انتظام په لور ئې پوره پوره توجو کړے وے. هغه یو ډیر بهادر رحمدل، دیانت دار بادشاه وو. پښتانهٔ امیران د هغهٔ په بے تکلفۍ ډیر خوشحال وو. او د هغهٔ انصاف و رحم سره اغزلے شوی وو. هغه به د غریبانانو او محتاجانو سره ډیر ښهٔ سلوک کولو.

بهلول لودی شاعر هم وو. دا یو رباعی هغهٔ د خلیل خان نیازی د دے رباعی په جواب کښې فی البدیه وئیلی وه.

د خلیل خان نیازی رباعی

خرے اوریځ ژاړی له پاسه کوټیله ژغ کړو بیلتون له لاسه
په هغه لونی ګوهر په خول ستا دا د مرحبا کا ستا زموږ دواسهٔ[١]

د بهلول رباعی

ملک به زرغون کړم په ورکه راسه ګوره وریځے د داد له پاسه
خول ے د عدل په درورون دے جهان به زیب موی زما له لاسه

بهلول اګر که د عالمانو مقننینو ډیر قدر کاوهٔ خو فطرتاً[٢] د حالاتو په تقاضا هغه یو سپاهی وو. او داسے معلومیږی چه په لویه پیمانه ئې د اهل علم سرپرستی نهٔ ده کړے.

---

١ محافظ ٢ پټه خزانه صـ٦٦

# سلطان سکندر لودی

## (۱۴۸۹---۱۵۱۷ء)

د سلطان بهلول لودی په وفات د هغهٔ د جانشینئ په مسئله د امیرانو ترمینځه بے اتفاقی پیدا شوه. ځنے امیران دَ اعظم همایون په مرسته اودریدل چه د بایزید ځوئے او د سلطان بهلول نمسے وو. ځنے امیران د سلطان بهلول د مشرځوی باربک شاه د بادشاه کولو په حق کښے وو. په دغه ورځو کښے باربک شاه د پلار د لودی نه دجونپور حاکم وو. لیکن خان خانان فرملی چه د لوئے پائے طاقتور امیر وو. ډیر امیران په خپله پره راواړول. او د بادشاه نعش ئے واخست. شهزاده نظام خان چه په دغه وخت کښے موجود وو. دځان سره روان کړو. او قصبه جلالی ته راغلل. او دلته ئے په هغه مکان کښے چه د کوشک سلطان فیروز په نامه مشهور وو. د حاضرو امیرانو په مشوره نظام خان بادشاه کړو. نظام خان د تخت نشینئ نه پس د سلطان سکندر خطاب اختیار کړو. او سمدستئ ئے د عیسیٰ خان په مقابله کښے خپل فوځونه اولیږل. ځکه چه دے امیر دهٔ د بادشاهئ نه انکار کړے وو. عیسیٰ خان مقابله او نهٔ کړے شوه. په جنګ کښے ګرفتار شو. ولے بادشاه د هغهٔ قصور معاف کړو. د دے نه پس سلطان سکندر د خپلو امیرانو او لښکر سره دهلی ته راغے. او دلته یو ځل بیا د ټولو امیرانو په صلاح د هغهٔ د تخت نشینئ دستوره اوکړے شوه. د تخت نشینئ په دے جشن کښے بادشاه خپلو ټولو امیرانو ته د هریو دعهدے او منصب مطابق انعامونه ورکړل. د فوځ سپاهیانو ته ئے هم د دوو میاشتو تنخواه ګانے دانعام په توګه ورکړے او په ټول ملک کښے ئے د یو کال مالیه معاف کړه. او د دے نه پس د خپل سلطنت د انتظام په لور متوجه شو.

د سکندر د تخت نشینئ نه پس د هغهٔ ورور باربک شاه د هغهٔ نه بغاوت اوکړو او په جونپور کښے ئے د خپلے خود مختارئ اعادن اوکړو. دغه وجه وه چه سکندر لودی د هغهٔ په

مقابله مجبور شو. د دوارو ورونو ترمینځه یو شدید جنګ اوشو چه نتیجه ئې د باربک شاه په تلینته کښې اووتله. او آخر ته ګرفتار شو. لیکن سکندر لودی د هغهٔ ډیره ښا ځنه اوکړه. او په زوره دستورئې په جونپور کښې حاکم مقرر کړو. په دې دول د هغهٔ یو بل ورور علاؤالدین عالم شاه هم بغاوت اوکړو. لیکن وروستو بیا په خپلو کارونو پښیمانه شو. بادشاه هغه هم معاف کړو. او اټاوه ئې په جاګیر کښې ورکړه. د دې نه پس سکندر لودی په کال سنه ۸۹۸ھ / ۱۴۹۳ء کښې بیانه هم فتح کړه. او خان خانان فرملی ئې د دې علاقې حاکم اوټاکلو.

په سنه ۹۰۰ھ / ۱۴۹۵ء کښې سلطان سکندر لودی په پټنه حمله اوکړه. دلته « بلبهدیو » نومې یو راجا حکمران وو. د شاهي فوځونو او راجا ترمینځه خونړی جنګونه اوشول. او د هغې په نتیجه کښې د پټنه علاقه په سلطنت د دهلي کښې شامله شوه. په دې مهم کښې چونکه بادشاه ډیر کړاو تیر کړې وو نو د لښکر د ارام او سازو سامان د درستۍ په غرض ځلور میاشتې په جونپور کښې اتال شو. دلته هغهٔ د خپلو امیرانو او حاکمانو د حسابونو پړتال اوکړو. او په دې کښې بادشاه ته ډیرې عجیبه خبرې معلومې شوې. د دغه وجه وه چه دې امیرانو او حاکمانو دا خپله بې عزتي ګڼله. او د بادشاه برخلاف ئې سازش اوکړو. لیکن سازش لا سرته نهٔ وو رسیدلې چه راز څرګند شو. او بادشاه سازشي امیرانو ته سختې سزاګانې ورکړې. د دې نه پس په کال سنه ۹۰۴ھ / ۱۴۹۹ء کښې شاهي فوځونو د نرولې قلا چه د مالوې په علاقه کښې یوه مضبوطه قلا وه محاصره کړه. دا محاصره ډیره اوږده شو. د دې وجه داوه چه د بادشاه امیرانو او د محصورینو ترمینځه سازش شوې وو. ولې دا راز هم څرګند شو او بادشاه سمدستي سازشي امیرانو ته سزاګانې ورکړې او د دې نه پس محصورین د قلا په حواله کولو مجبور شول.

په سنه ۹۰۵ھ / ۱۵۰۰-۱ء کښې بادشاه د « سنبل » په لور لاړ. او هورې ځلور کاله اتال شو. په دغه وخت کښې د دهلي صوبه دار اصغر خان ترین نومیدهٔ. دې صوبیدار د بادشاه د غیر حاضرۍ نه فائده واخسته. او د بغاوت اراده ئې اوکړه. ولې بادشاه سمدستي د دهٔ د ارادې نه خبر شو. بادشاه په دې سلسله کښې په یو لور د سرهند حاکم خواص خان ته د اصغر د مقابلې فرمان اولیږلو. او په بل لورئې د ماچیوارې حاکم هم د هغهٔ د مقابلې په غرض روان کړو. ولې خواص خان لا دهلي ته نهٔ وو رسیدلې چه اصغر خان په خپلو کارونو پښیمانه شو. او د بادشاه په خدمت کښې حاضر شو. بادشاه د هغهٔ قصور معاف کړو. او انعام واکرام ئې ورکړو.

د دې نه پس بادشاه خپل یو امیر خواجه محمد فرملی د سفیر په دول د ګوالیار راجا

مان سنګهه ته اولیږلو - او دهغهٔ نه ئے د اطاعت مطالبه اوکړه - دا سفارت کامیاب شو او راجه مان سنګهه پنځویشت زره اشرفئ اوسل اسونه د خراج په ډول د بادشاه په خدمت کښې رااولیږل - اوخپل یو وراره ئے هم د زروکسو سپاهیانو سره د بادشاهی فوځونو کښې د خدماتو د پاره مقرر کړو - ولے دګوالیار راجا د اطاعت د اقرار باوجود په خپل قول قائم پاتے نهٔ شو - اوڅه موده پس د شاهی فوځونو دلاسه دګوالیار ریاست هم په سلطنت دهلی کښې شامل شو

دغه شان د دهولپور ریاست هم تسخیر شو - او بیا بادشاه د بهار ټوله علاقه هم په خپل سلطنت کښې شامله کړه - او په بنګاله ئے هم حمله اوکړه - لیکن د طرفینو په مینځ کښې صلح اوشوه - د رنتهبور ریاست هم سلطان سکندر په خپل سلطنت کښې شامل کړو - او بیا خپل صدر مقام دهلی ته راغے - څه موده پس بادشاه ناجوړه شو - او په مرئ کښې ئے دانه راوختله - او د دے تکلیف نه په کال $\frac{٩٣٢}{١٥١٧}$ کښې وفات شو -

سلطان سکندر لودی د مقتدر شخصیت او د لوئے تدبر خاوند وو - هغهٔ کښې ډیرخوبیونه دپلار وو - ولے د دے باوجود هغه سخت ګیر هم وو - د ټولو نه اول هغهٔ هغه امیران په خپله قبضه کښې راوستل کوم چه دهغهٔ د تخت نشینئ نه مخالف وو - او بیا د خپل سلطنت په استحکام کښې مصروف شو - هغهٔ په خپله حکمت عملئ هغه سرکش او طاقتور امیران کوم چه د هغهٔ د پلار په وخت کښې محض د هغهٔ د ښهٔ سرپټوب او مصلحت شناسئ په وجه دهغهٔ ملګری وو - دخپل مټ لاندے اوساتل - د دهلی سلطنت ئے د جهلم نه تر بنګالے خور کړو - دراجپوتانے مقتدر راجګان ئے په خراج مجبور کړل - د خزانے د حساباتو جاج پړتال به ئے کولو - د عوامو د حالت نه ئے خپل ځان خبردار ساتلو - تجارت او زراعت ته ئے ترقی ورکړی وه - دغلے نه ئے ډیر محصولونه کم کړی وو - او د دے نتیجه دا وه چه په ملک کښې ارزانه ارزانی وه - او د معمولی آمدن خاوند به هم په آرام وآسائش ژوند تیرولو - په انصاف ډیر مئین وو - د هغهٔ دروازه به شپه ورځ د دادخواهانو د پاره لرے وه - او هرچا به په ډیرے آسانئ خپل فریاد بادشاه ته رسولے شو -

دے بادشاه خپل روزمره وخت داسے تقسیم کړے وو - د ماسپښین نه پس به ئے د عالمانو سره مجلس کولو - بیا به ئے د قرآن شریف تلاوت کولو - د ماښام د مانځهٔ نه پس به حرم سرا ته تلو - اوهلته به یوه ګینټه ایسار وو - بیا به خلوتِ خاص ته تلو - د شپے به هغهٔ د دادخواهانو په درخواستونو احکامات لیکل - ذاتی او شاهی خطو

کتابت به ئ هم دلے کولو. په خلوتِ خاص کښې به د هغهٔ سره لوئ لوئ عالمان هم موجود وو.

د هغهٔ دا قاعده وه چه لښکر به ئ په کوم مهم اولیږلو. نو هره ورځ به ئ دوه حکمونه ورلیږل. اول حکم به د سحر د نمونځ سره رسیدو. بیا هغ کښې به د قیام نه پس د فوځیانو دکارونو او فرائضو تفصیل وو. په سرایونو کښې به د ډاک اسونه هروخت تیار ولاړ وو. او خواه که لښکر نه هر څومره لرې وو. په دے قاعده کښې به څهٔ فرق نه راتلو. د هرکار د پاره خپل خپل وخت مقرر وو. او په هغه وخت کښې به هم هغه کارکیدلو. د هغه قوت حافظه هم ډیره زیاته وه. او د مودو مودو خبره به ئ یاده وه.

د علاؤالدین خلجی په شان به هره ورځ هغهٔ ته د اشیاؤ نرخنامه پیش کیدله. او د سلطنت د مختلفو حصو نه به ورله اطلاعات رارسیدل. غرض د دهٔ په وخت کښې به ټول کارونه په دیانت او مستعدئ کیدل. د بادشاه د دیانت او مستعدئ اثر په خلقو هم ظاهر وو. د علم او صنعت نه به هم بے پروائ نهٔ کیدله. ځلمی امیران او سپاهیان به په مختلفو مفیدو هنرونو کښې مشغول وو. بادشاه په خپله هم ښهٔ شاعر او تخلص ئ ګلرخ وو. او د شاعرانو هم ډیر قدردان وو. د "شیخ جمال کنبوه" چه د هغه زمانے یو باکمال صوفی شاعر وو. ډیر معتقد وو. د شیخ جمال کنبوه یو شعر دلته لیکلے شی. ے

ماراز خاک کویت پیراهن است برتن — آن هم زآب دیده صد چاک تا بدامن

درسوزن مژگان بکشم رشتهٔ جان را — تاچاک بدوزم که وران پیرهن استش

د دے بادشاه په زمانه کښې هندوانو فارسی ژبه زده کړه. او د دے په وجه هندوانو د مسلمانانو د علمونو نه خبر شول. "ماتهیں بهرا" نوے یو هندو عالم د سنسکرت ژبے نه د طب یو کتاب په فارسئ ژبه کښې ترجمه کړو. چه د طب سکندری په نامه تر اوسه مشهور دے. "پنډت ډونګرمل" په هغه زمانه کښې د فارسئ ژبے یو شاعر وو. چه دا شعرئ د نمونے په ډول لیکلے شی. ے

دل خون نه شدے چشم تو خنجرنشدے گر — آه گم نشدے زلف تو ابتر نه شدے گر

سلطان سکندرلودی ته په خپل سلطنت کښې د امن امان قائمولو په لړکښې ډیر ګړاؤنه پیښ شول. ولے هغهٔ د خپلے لارے ټول خرخښونه اوارکړل. او په ملک کښې ئ

امن و امان او استقلال پیدا کړو ـ هغه یو ذورس او د وینې دماغ خاوند وو ـ او اګرچه هغه په خپل وخت کښې د سلطنت په نظم و نسق کښې څه نوې اصلاحات او نهٔ کړے شوې ولے هغهٔ په دے کښې نوے جوش او نوے روح پیدا کړو ـ په مذهبي خیالاتو کښې هغه ډیر سخت وو ـ په دے بنا د هغهٔ په نظم حکومت مذهبي رنګ ډیر غالب وو ـ هغه د مذهب اسلام په ترقئ او عروج کښې ډیر ساعي وو ـ او د خپلے زمانے د فقیرانو، عالمانو، فاضلانو ډیر قدردان وو ـ د هغهٔ د دین دارئ غټه فائده د سلطنت په حق کښې را ووتله ـ چه د اصیلو او نیک چلنو خلقو نه بغیر به د سلطنت عهدے بل چا ته نهٔ شوے ورکولے ـ دا بادشاه فطرتًا د رزیلو او کمینه خلقو نه متنفر وو ـ د عدالت د محکمے انتظام ئے په ډیره معقوله طریقه کړے وو ـ د اکثر مقدماتو سماعت به ئے په خپله کولو ـ او فریقین به د هغه د فیصلے نه مطمئن وو ـ او د ا وئیل به بے ځایه نهٔ وی ـ چه سکندر لودی د خپل خاندان یولوئے بادشاه وو ـ

د سکندر لودی د زمانے یو مشهوره واقعه د اګرے ښار تعمیر دے ـ په کال ۱۵۰۳ء کښې دلته د فوځ یوه چاوڼئ په دے غرض جوړه کړی شوی وه ـ چه د کیر چا پیره علاقو په انتظام کښې به سهولت وی ـ لږه موده پس بادشاه په خپله هم دلے استوګنه اختیار کړه او د ا یولوئے ښار شو ـ بادشاه به په سکندره نومے کلی کښې اوسیدلو ـ دا مقام تر اوسه د دے بادشاه په نوم مشهور دے ـ د مغل اعظم اکبر مقبره هم دلے ده ـ د اګرے دابادیدلو په دوئم کال په ۱۵۰۵ء کښې یو سخته زلزله راغله ـ په دے زلزله کښې یوازے د اګرے نوے ښار نه بلکه د هندوستان ډیره علاقه هم تباه شوه ـ د دے زلزلے په حقله چا دا رباعي وئیلے ده ـ

درنهه صد و احدے عشره از زلزلها ـ ګردید سواد آګره چون مرحلها
باآنکه بنا هائش عالی بود ـ از زلزله شد عالیها سافلها

د دے زلزلے تاریخ د لفظ « قاضی » نه هم اوزی ـ

# سلطان ابراهیم لودیؒ

## (١٥١٧----------١٥٢٦)

د سلطان سکندر لودی په وفات هم د هغهٔ د ځامنو ترمینځه د تخت نشینۍ په باب کښې اختلاف پیدا شو۔ لیکن آخر ته د لویو لویو امیرانو په صلاح او مشوره ابراهیم خان د پلار جانشین او منلے شو۔ او د هغهٔ د سلطنت حد جونپور مقرر شو۔ د جونپور حکومت د هغهٔ بل ورور جلال خان ته ورکړے شو۔ او د دے تقسیم مطابق جلال خان د خپلو امیرانو په ملګرتیا کښې د جونپور په لور روان شو۔ لیکن د دے نه لږ ورځے پس خان جهان لودی چه د سلطان سکندر د وخت یو لوے امیر او د راپړی جاګیردار وو۔ د ابراهیم په خدمت کښې حاضر شو او هغهٔ د دے کورنۍ د تقسیم نقصانات ابراهیم ته څرګند کړل۔ او هغه ئے په خپله فیصله پښیمانه کړو۔ چنانچه په شهزاده جلال خان پسے سلطان ابراهیم پیغام اولیږلو۔ او هغه ئے د مشورے په غرض بیرته را او بللو۔ لیکن جلال خان هم د دے واقعاتو نه خبر شوے وو۔ نو هغه بیرته رانغلو۔ د دے نه پس سلطان ابراهیم د جلال خان د تسلۍ په غرض نور لوے لوے امیران هم اولیږل۔ لیکن جلال خان د هغوی په خبرو هم اعتماد او نهٔ کړو۔ د دے نتیجه دا شوه چه د سلطان ابراهیم د لودی نه د جلال خان د علاقے لویو لویو امیرانو ته لمسون شروع شو۔ او هغوی ئے د جلال خان د اطاعت نه منع کړل۔

د دے نه پس سلطان ابراهیم بیا په تخت سلطنت جلوس اوکړو او خپلو امیرانو او منصب دارانو ته ئے جاګیرونه او انعامونه ورکړل۔ په دے موقع هغهٔ ډیر خیراتونه هم اوکړل۔ او د غریبانانو او فقیرانو ئے ډیره دلجوئ او پالنه اوکړه او خپل رعیت ته ئے د درے کالو خراج هم معاف کړو۔ د دے نه علاوه په خپل سلطنت کښې د خپلے تخت نشینۍ په خوشحالۍ کښې هغهٔ ټول قیدیان هم آزاد کړل۔ او نهٔ صرف په هند کښې پښتانهٔ ئے په انعامونو

مارۀ کړل ـ بلکه د روه پښتنو ته ئے هم انعامونه ورکول ـ او په دے دول ئے په ابتدا کښے ټول خلق د ځان نه خوشحاله کړه ـ په دے ورځوکښے جلال خان د هغهٔ نه علانیه مخالفت اختیار کړو ـ او په خپله نامه ئے سکه او خطبه جاری کړه ـ

اعظم همایون سروانی د لوئے پائے یو امیر په دغه ورځوکښے د سلطان ابراهیم د لوری نه د کالنجر په تسخیر مقرر شوے وو ـ دا قلعه د جلال خان سره متعلق وه ـ په جلال خان کښے د اعظم همایون د مقابلے توان نهٔ وو ـ نو هغهٔ اعظم همایون ته دا پیغام اولیږلو چه ته زما د پلار په ځائے ئے ـ تا ته معلومه ده چه زما هیڅ قصور نشته ـ وعده خلافی د سلطان ابراهیم د لوری نه شوی ده ـ او کومه لږ شان علاقه چه د میراث په دول ما ته راکړے شوی ده ـ هغې ته هم سلطان ابراهیم سترګے خړے کړی دی ـ ستا نه زهٔ دا هیله لرم چه ته به د حق ملګرتیا کوے ـ اعظم همایون یو دیر نیک ، پرهیزګار او دیولارے پښتون وو ـ هغه د جلال خان په دے خبرو نرم شو ـ او د شهزاده جلال خان ملګرے شو ـ او د هغهٔ سره ئے دا فیصله اوکړه چه اول د جونپور تابیا پکار ده ـ او بیا به د نورو علاقو تکل کوؤ ـ د دے فیصلے مطابق اعظم همایون او جلال خان په اوده حمله اوکړه ـ د هغه ځائے حاکم سعید خان لودی مقابله او نهٔ کړے شوه ـ او تښتیدو او سلطان ابراهیم ئے د دواقعاتو نه خبر کړو ـ د دے واقعاتو په اوریدو سلطان ابراهیم خپل نور ورونه د دولت خان لودی په نګرانئ کښے پریښودل ـ او په خپله د اعظم همایون او جلال خان مقابلے ته روان شو ـ لیکن په دغه اثنا کښے د جلال خان او همایون ترمینځه څه خفګان پیدا شوے وو ـ او هغه د خپل ځوی فتح خان په ملګرتیا کښے د سلطان ابراهیم په لور رارون وو ـ سلطان ابراهیم چه د دے نه خبر شو نو د هغهٔ استقبال ته ئے لوئے لوئے امیران اولیږل ـ او د هغهٔ ئے په دے موقع دیره پالنه او نازغڼه اوکړه ـ ولے په زړهٔ کښے ئے ورسره دشمنی پیدا شوی وه ـ

د جلال خان په تعاقب کښے سلطان ابراهیم نور امیران اولیږل ـ د دے امیرانو په شهادت شهزاده جلال خان د سلطان ابراهیم اطاعت او د کالپی جاګیرداری قبلولو ته تیار شو ـ او دا او تاوے په مقام د سلطان ابراهیم په خدمت کښے حاضر شو ـ لیکن سلطان ابراهیم د هغهٔ مطالباتو منلو ته تیار نهٔ شو ـ او د ابراهیم په اشاره د قلعه هانسی په لاره کښے او وژلے شو ـ

چه سلطان ابراهیم د جلال خان د قتل نه پس د هندوستان تخت د خپل ځان د پاره محفوظ اوګڼلو ـ نو هغه د ګرے نه دهلی ته راغے ـ او خپل سلوک ئے د امیرانو سره بیخی بدل

کړو. هغه به دا وئیل چه د بادشاهانو نۀ قام وی نۀ ورونه عزیزان او نه ئې څوک خپل خپلوان ـ بلکه خپل او پردی ټول د بادشاه نوکران وی. او د هغه سلوک مستحق وی کوم چه د یو نوکر سره مناسب وی. د غه وجه ده چه ابراهیم خپل ټول امیران په دے خبره مجبور کړل چه دوی به د بادشاه د تخت په مخکښے لاس په نامه ولاړ وی. دا براهیم دا بدسلوک پښتنو امیرانو په ډیر شدت محسوس کړو. او په هغوی کښے بد دلی پیدا شوه. په خپلو امیرانو باندے د سلطان ابراهیم د بدګمانئ نتیجه دا شوه چه هغوی سازشونه شروع کړل. او هر یو امیر د خپل عزت او خپلو مفادو په تابیا کښے لګیا شو. د بده مرغه په ابراهیم کښے نه د بهلول په شان بے تکلفی او مصلحت شناسی وه. او نۀ د سکندر په شان جوش او مستعدی تدبر او سنجیدګی. د پلار نیکۀ برخلاف هغه یو ضدی، مغرور او د خپلے رائے خاوند وو. دابراهیم د دے خود رائے تکبر او بدګمانئ نتیجه دا شوه چه د هغۀ او د امیرانو ترمینځه د اعتماد و وفا داری فضا خیرنه شوه. هغه د خپلو امیرانو د طاقت په کمولو شروع اوکړه. او د کومو امیرانو نه چه په زړۀ کښے د هغه ویره کیدله. د هغوی په وژلو ئے لاس پورے کړو. ولے په کومه طریقه چه هغه د خپلو امیرانو سره سلوک شروع کړو. په هغۀ هغۀ نه صرف خپل ځان ته نقصان اورسولو. بلکه په هند کښے ئے د پښتنو طاقت ته هم لویه صدمه اورسوله.

د ابراهیم چه د کومو امیرانو نه په زړۀ کښے ویره کیدله. په هغو کښے سرفهرست هغه اعظم همایون سروانی وو. چه ذکرئے وړاندے شوے دے. اعظم همایون د دولس زری منصب لرلو. او په دغه ورځو کښے د سلطان ابراهیم د لوری نه سره د خپلو ځامنو د ګوالیار په تسخیر مقرر شوے وو. او د ګوالیار په علاقه کښے په جنګ کښے لګیا وو. ډیره علاقه ئے فتحه کړی وه. او د ګوالیار قلعه محاصره شوی وه. او قریب وه چه محصورین د قلا په حواله کولو آماده شوے وے. لیکن په دغه اثنا کښے هغه د یو فرمان په ذریعه دهلی ته اوغوښتلے شو. اعظم همایون دا ناکامه محاصره اوچته کړه. او د دهلی په لور روان شو. د دهلی د تلو نتیجه معلومه وه. ځکه اعظم همایون خپلو دوستانو او ځامنو د دهلی ته تلو نه منع کړو. او د بغاوت مشوره ئے ورکړه. ولے اعظم همایون د ډیرو اوچتو اخلاقو خاوند وو. د خپلو دوستانو او ځامنو په جواب کښے هغۀ دا اووئیل. ما غلو پښت کاله د لودی خاندان نمک خوړلے دے. او د دے خاندان د زړو او ځوانو خدمتګارانو او جانثارانو نه یو سړے یم. ستاسو د وینا مطابق که بادشاه زما سابقه او موجوده خدمات

نظر انداز کړي - او ما اووژنی نو دنیا به هغهٔ ته احسان ناشناس اووائی - ولے زما د پاره دا ډیره گرانه ده چه په خپل ځان د نمک حرامئ داغ اولګوم - او بغاوت اوکړم " دوستانو هغه بیا بیا مجبور کړو - ولے دهغهٔ هم هغه یو وینا وه " تاسو چه څه وایئ هغه به رښتیا وی - ولے زهٔ ستاسو مشوره نهٔ شم قبلولے - او خپل مخ د نمک حرامئ په تورکی نهٔ شم تورولے "

.. غرض اعظم همایون د ډیرش زره فوځ سره د دهلی په لور روان شو - په لاره کښے هغه د ځنے لویو لویو امیرانو دوړلو نه خبر شو - چه هغوی په دهلی کښے د ابراهیم په قید کښے پراتهٔ وو - دغه وخت اعظم همایون خپلو دوستانو بیا د دهلی د تلو نه منع کړو. او د بغاوت مشوره ئے ورکړه - ولے هغهٔ بیا هم انکار اوکړو - چه دهلی ته نزدو شو نود یو بل فرمان په ذریعه د هغهٔ نه د فوځ کمان واخستے شو - او چه دهلی ته دوه کروهه فاصله پاتے شوه نو د یو بل حکم په ذریعه گرفتار کړے شو - او په یو معمولی ټټو سور کړے شو - او نیغ د دهلی جیل خانے ته اورسولے شو - او په جیل کښے هم د هر قسمه مراعاتو نه محروم کړے شو.

په دے موقع چه اعظم همایون سلطان ابراهیم ته کوم پیغام اولیږلو - دهغے نه د اعظم همایون د لوړ شخصیت ، پاکے زندګئ او مستقل مزاجئ اندازه لګیدے شی - هغهٔ ابراهیم ته دا پیغام اولیږلو - تهٔ چه څه کول غواړے هغه زما یقین دے چه ضرور به ئے اوکړے - ولے په دے دِ خبروم چه زما ځوئے ستا په دے رویه قهرجن شوے دے - دهغهٔ هم څه بند وبست اوکړه - او بله دا چه زما د ماشه اوداسهٔ د پاره اوبهٔ اوکوزه مصله چه بنده نهٔ کړے - د دے نه زیاتی زهٔ ستا نه هیڅ رعایت نهٔ غوارم - او څه چه دِ زړهٔ غواړی هغه اوکړه

د اعظم همایون دا خبره رښتیا شوه - د هغهٔ ځوئے فتح خان یو لوئے لښکر جمع کړو - ډیر امیران د هغهٔ ملګری شول - او د غلوییښت زره لښکر سره د ابراهیم مقابلے ته راغے په بل لور ابراهیم هم پنځوس زره لښکر مقابلے ته وراولیږلو - دجنګ نه اول باغی امیرانو دا خبره منظوره کړه چه که بادشاه اعظم همایون پریږدی نو دوی به دجنګ نه بغیر لاړ شی - او د سلطان ابراهیم د مملکت نه به اوځی - ولے ابراهیم په خپل هوډ ټینګ وو - هغهٔ دا مطالبه او نهٔ منله - جنګ اوشو - اولس زره پښتانهٔ د دواړو لوریو نه اووژلے شول - ابراهیم په خپلو ورونو خو بریالے شو ولے د بد دلئ او مخالفت بخری ټولو پښتنو ته اورسیدل - د سلطنت د زوال نښے نښانے څرګندے شوے - او د پښتنو اتفاق په نفاق بدل شو - د دے نه پس په جیل خانه کښے اعظم همایون ته زهر ورکړے شول - او دغه شان سلطان ابراهیم د خپل

سلطنت د زوال اسباب په خپله پیدا کړل۔ د اعظم همایون ځوئے فتح خان چه د ملس زری منصب ئے لرلو۔ د بهار حاکم دریا خان لوهانړی ځوی مبارز خان (یا شهباز خان) تخته لاړ۔ او د هغهٔ خوائے اونیوله۔ مبارز خان د سلطان محمد لقب اختیار کړو۔ او یا زره فوځ او د ابراهیم مخالف ټول امیران ئے په خپله پره راواړول۔ او د بهار په ټوله صوبه ئے قبضه اوکړه۔ او دا صوبه د ابراهیم په ژوند کښے د سلطنت دهلی نه جدا شوه۔

دابراهیم لودی په واقعاتو کښے د دولت خان لودی او علاؤالدین عالم خان ذکر هم اهمیت لری۔ ځکه چه دابراهیم د مخالفت په لړکښے دے دواړو امیرانو داسے اقدام او کړو چه د هغ په نتیجه کښے په هندکښے د پښتنو سلطنت سقوط اوموند۔

دولت خان لودی د هغه دریا خان لودی ځوئے وو چه د هغهٔ ذکر د بهلول لودی په واقعاتو کښے شوے دے۔ دولت خان لودی د ابراهیم په وخت کښے د پنجاب د صوبے گورنر او د لودیانو د گورنرئ یو نومیالے سپه سالار وو۔ او د یرشوکالو راسے د لودی خاندان د بادشاهانو یو اعتباری امیر وو۔ ابراهیم اوس هغهٔ ته نیت بدل کړو۔ او د دهلی ته ئے اوبللو۔ دهلی ته د تلو نتیجه څرګنده وه۔ نو هغه په خپله لاړ نهٔ شو۔ او خپل ځوئے دلاور خان ئے اولیږلو۔ په دے خبره ابراهیم ډیر خفه شو او دلاور خان ئے د دهلی جیلخانے ته د سیل په نیت په دے غرض اولیږلو۔ چه د قیدی امیرانو حال په خپلو سترګو اووینی۔ او د بادشاه د مخالفت نه خپل پلار راوویروی۔ د دولت خان ځوی په جیل خانه کښے قیدی امیران په داسے حالت کښے اولیدل۔ چه د دیوالونو پورے اویزاند وو۔ او تش د هډوکو پنجرے پاتے وے۔ هغهٔ چه هلته څه اولیدل د هغ نه هغهٔ ته د خپل پلار او د خپلے گورنرئ انجام څرګند شو۔ ابراهیم خو هغه په دے غرض جیل خانے ته لیږلے وو۔ چه دے به اوویریږی۔ او خپل پلار به ز ما لاس ته کښینوی۔ ولے د دولت خان ځوئے په څه چل ول د دهلی نه په تیښته کښے کامیاب شو۔ او چه څه ئے لیدلی وو د هغے نه ئے پلار خبر کړو۔ اوس د دوی د پاره د بغاوت نه بغیر بله لار نهٔ وه۔

ولے دولت خان لودی دا خیال اوکړو چه که په څرګنده بغاوت اوکړم نو د نمک حرامئ داغ به راباندے اولګی۔ اوکه بغاوت نهٔ کوم نو ابراهیم ے په خیر کښے نهٔ پریږدی۔ نو هغهٔ دا غوره کړه چه په ابراهیم بل څوک بدنام شی۔ او زهٔ هم د بغاوت د الزام نه بچ شم۔ په دے سلسله کښے هغهٔ د ابراهیم یو تره علاؤالدین عالم شاه سره غوږ نژدے کړو. علاؤالدین هم د ابراهیم دلاسه در په دیکو وو۔ او په گجرات کښے د یو پناه گزین په دول استوګن

وو۔ دولت خان لودی هغه رااوغوښتلو۔ او هغه ئے دابراهیم برخلاف د بابرنه دمرستے په غرض کابل ته اولیږلو۔ دعلاؤالدین په تلو او د هغهٔ په دعوت د بابرمړاوی امیدونه بیا تاند شول۔ د علاؤالدین دا غرض وو چه د بابر په مرسته به د دهلی تخت حاصل کړم۔ او د بابر دا اراده وه چه که علاؤالدین بادشاه شی نو د پنجاب صوبه به زما شی۔ ولے د علاؤالدین د دعوت باوجود بابر په هند باندے په حمله کولو کښے دوجاله وو۔ ځکه چه د بابر فوځی طاقت دومره نهٔ وو چه هغهٔ د ابراهیم د بے شماره فوځ مقابله کړے وے۔ او د علاؤالدین د اثرورسوخ او اقتدار نه د هغهٔ څه خاصه طمع نهٔ کیدله۔ دغه وجه وه چه په دے موقع د زبانی وعدو او لوظونو نه بغیر بابرڅه عملی اقدام کولو ته تیار نهٔ شو۔

په بل لور دولت خان لودی اگرچه د نمک حرامئ له خوفه د ابراهیم لودی سره مخ په مخ مقابله نهٔ خوښوله۔ ولے هغه چه دابراهیم نه بدل اخستو د پاره کومه لاره غوره کړه، هغه هم په خپل نوعیت کښے لویه غداری وه۔ صرف شکل ئے بدل وو۔ هغهٔ دا غلطی اوکړه چه د ابراهیم نه د بدل اخستو ذریعه ئے د بابر حمله اوګڼله۔ بابر ته د هیلے د دعوت دورکولو په نتائجو هغهٔ قطعی غور نهٔ ووکړے۔ د هغهٔ دا خیال وو چه بابر په حشر راولم۔ او چه د ابراهیم د سلطنت پښے لوشی نو بابر به خپله برخه کیږے واخلی او په خپله مخه به لاړشی۔ او پښے به ما ته او علاؤالدین ته پاتے شی۔ او بیا به کتے شی۔ هغهٔ دے خبرے ته هډو فکر نهٔ ووکړے چه د بابر غونډے بو تږیدلے او سختو نرمو وهلے سپاهی چه د هندوستان غونډے وسیع او زرخیز ملک فتح کولو ته تږے ناست دے۔ په دے مزکه خپلے وینے تویے کړی۔ او د ابراهیم غونډے جابر او مقتدر دشمن زیرکړی نو هغه به د تیمور په شان صرف په لوټ تالان صبر اوکړی۔ دا درست ده چه په هندوستان باندے د تیمور حمله د مال و دولت په تالاش کښے یو حیرانونکی جیټه وه چه په هغ کښے حمله آور د دهلی دښار نه په نوّی هاتیانو دلوټ ساز وسامان بارکړے سمرقند ته اوړے وو۔ او دغه شان ئے د دهلی ښار تباه کړے وو۔ د تیمور دا حمله د بابر نه سل کاله اګاهو په هند باندے شوے وه. او په دے عرصه کښے بابر دا حالات څوڅوځله لوستلی وو۔ او هغه د دے په اصلیت او نوعیت ښهٔ پوهه وو۔ ولے د بابر او تیمور په طاقت او حیثیت کښے ډیر فرق وو۔ دغه وجه ده چه په ابتداء کښے د هندوستان د فتح خیال د هغهٔ په تصور کښے نهٔ راغلے وو۔ او نهٔ راتلے شو۔ دا جدا خبره ده چه هغهٔ د هندوستان د فتح نه پس په شاندارو الفاظو کښے څوځله دا لیکلی دی چه د هندوستان د فتح اراده زما په زړهٔ کښے په کابل کښے د حکومت

دآغاز سره پیدا شوی وه. ولې هرکله چه علاوالدین دهغهٔ په خدمت کښې حاضر شواو د هند دحملې دعوت ئې ورکړو. او په دې پسې سم د دولت خان لودی له خوا هم دغه شان دعوت ورکړې شو نو د بابر تلوسې بیا راژوندۍ شوې. او د پښتنو دبې اتفاقۍ په وجه هغه دې لوئې قسمت آزمایئ ته تیار شو. او دا ځل قسمت د بابر سره مرسته هم اوکړه.

لکه چه مو اووئیل د بابر د دې حملې نه څه کم وزیات سل کاله اول تیمور د مال و دولت او لوټ په غرض په هندوستان حمله کړې وه. او د تیمور نه وړاندې هم په مختلفوزمانو کښې د بابر نورو اسلافو (مغلو) د لوټ او تالان په غرض په پنجاب حملې کړې وې. لیکن د دې حملو غرض د څه علاقو په خپل سلطنت کښې شاملول نهٔ وو. ځکه چه تیمور او د هغهٔ نه وړاندې مغل هم د ډیرلوئې وسیع سلطنت خاوندان وو. لیکن د بابر حالت د خپلو اسلافو نه جدا وو. بابر د خپل آبائی ریاست نه محرومه شوې وو. او د دې ریاست د حصول نه قطعی مایوسه وو. د هغهٔ په قبضه کښې په افغانستان کښې یو مختصره شان علاقه وه. او دا لنډ تنګ ریاست د بابر د تلوسو او ارزوګانو دپاره کافی نهٔ وو. لیکن د دې باوجود تر څو چه په هند کښې د سلطان سکندرلودی حکومت وو. بابر په هند باندې د حملې تصور هم نهٔ شو کولې. تر دې چه د ابراهیم لودی د حکومت په ابتدائی کالونو کښې هم هغهٔ نه په خپل ځان کښې دا وس لیدو او نه ئې دا توقع کیدله چه د هندوستان سلطنت نه ترلاسه کړی. اګرچه د کال ۱۵۱۹ء په دوران کښې هغه د اباسین نه په نرخاتهٔ د پنجاب په علاقو کښې د تاختو نو آغاز کړې وو. او یو کال ئې د باقاعده مالیې او محصول په غرض خپل څه معمولی فوځ هم په دې علاقو کښې پریښودلے وو. لیکن د دې ټولو خبرو نه د هغهٔ غرض مال غنیمت حاصلول او په کابل کښې پرِ خپل ضروریات پوره کول وو. لیکن هرکله چه د سلطان ابراهیم د پالیسۍ په نتیجه کښې پښتانهٔ په خپل مینځ کښې اخته شول او بابر ئې هم په حشر راا وبللو نو په دې سترکښې هغهٔ ته د خپل خیر کلکه طمع پیدا شوه. بیا هم د بابر مقصد په خپل سلطنت کښې صرف د پنجاب شاملول وو. نه چه د هند په ټول سلطنت قبضه کول. ولې د بابر د خوش قسمتۍ نه د بابر په حق کښې حالات داسې موافق شول چه هغه ئې د هند مالک اوګرځولو.

بهرحال دولت خان لودی هم خپل ځوئې دلاور خان کابل ته اولیږلو. او بابر ته ئې په هند د حملې دعوت ورکړو. د دې دعوت په جواب کښې بابر دولت خان لودی ته خلعت رااولیږلو. او په هند باندې ئې د حملې تابیا شروع کړه. او په کال ۱۵۲۴ء کښې

دکابل نه د هند په تګ راروان شو - چه په اباسیند راپورې وتو نو دغه وخت دولت خان لودی هم د هغهٔ په خدمت کښې حاضر شو - او لس زره اشرفئ او شل هاتیان ئې د بابر په خدمت کښې پیش کړل - د دولت خان سره د معاهدې نه پس بابر نوی فوځونه بهرتی کړل - او خپل اعتباری امیران ئې د ځان نه وړاندې د پنجاب د قبضې په غرض اولیږل - او کوم وخت چه بابر لاهور ته اورسید نو لاهور د چغتائی امیرانو په لاس فتح شوې وو -

سلطان ابراهیم په آګره کښې د بابر د حملې نه خبر شو نو هغهٔ دولت خان لودی ته دا اولیکل :-

" تا چه کوم موجوده عزت او شان حاصل کړې دې دا زما د پلار د احساناتو برکت دې - ولې تا ناشکری اوکړه - او مغل دِ زما په کور راوخیژول - او پنجاب دِ ورله حواله کړو - زهٔ اوس دِ تا سره صلح کوم - او تا سره او ستا ځامنو سره به دوکه نهٔ کوم - او دا وعده د قرآن په قسم مضبوطوم - تا ته پکار دی چه دا ناوړه پریږدې "

دولت خان ددې جواب داسې ورکړو :-

" دا درست ده چه زهٔ ستا د پلار سکندر خان نمک پرورده یم - او د هغهٔ په احساناتو د زړې نه نهٔ شوې یم - ما خپل عمر د هغهٔ په خدمت کښې صرف کړې دې - هغهٔ به رخداته پاک دِ هغه په بهترو جنتونو کړی -) د خپلو امیرانو سره ډیر ناکامونه کول - او د هغوی دلجوئی به ئې کوله - هغهٔ به هیڅرې دا نهٔ وه برداشت کړی چه زهٔ ئې په ظلم او بې ګناه وژلې وې - چونکه تهٔ لاځلیې ئې نو تا د هغه چالسون واوړیدو چه هغوی ستا بدخواه امیران وو - او تا د هغوی په وینا د خپل پلار ډیر امیران چه ستا د سلطنت ستنې وې - په ډیرې بې رحمئ بې ګناه اووژل - او د خپل سلطنت جرړې دِ په خپل لاس پرې کړې - تا په خپله رویه هغه اعتماد زائل کړو کوم چه امیرانو ستا په ذات کښې لرلو - ما مغل ستا په کور نهٔ دی راخیژولی - بلکه دا ستا دې بدې رویې راوستلی دی "

د بابر او علاؤالدین ترمینځه دا معاهده شوی وه چه که بابر د هند په فتح کولو کامیاب شي نو د سرهند پورې علاقه به د بابر په حکومت کښې شامله وی او د هند په نورو علاقو به د علاؤالدین حکومت وی - په دې معاهده کښې د دولت خان مطلب نهٔ حاصلیدهٔ د هغهٔ دا مطلب وو چه د بابر په کومک دابراهیم معامله فیصله شي نو د پنجاب په صوبه کښې به د هغهٔ خود مختاره حکومت قائم شي - د بابر خپله اراده هم دا معلومیده چه هغه پنجاب په خپل ریاست کښې شاملول او د لاهور نه دویم کابل جوړول غوښتل - دولت خان

چه د بابر په اکرو پوهه شو نو په خپله رویه پښیمانه شو- په دغه اثناءکښې بابر ته په بلخ باندې د اوزبکو د حملې خبر راغی نو هغه سمدستی په لاهورکښې څه حفاظتی فوځ پرېښود. او په خپله په ډيرې تادئ کابل ته لاړ- مقصد ئے دا وو چه د بلخ معامله به هم ختمه کړي. او د پښتنو نوی فوځونه به هم بهرتی کړی- او بیا به د نوی سرنه د ابراهیم په تابیا کښې لګیا شي-

چه بابر کابل ته لاړ نو دولت خان لودی او د هغهٔ وراره غازی خان فوځونه جمع کړل -او دا اراده ئے اوکړه چه په پنجاب کښې د بابر لخوا متعین فوځونه بیرته او شړی.هغوی دا بندوبست هم کړے وو چه د بابر فوځونه په دوؤ حصو کښې ګیر کړی لیکن د دولت خان ځوی دلاور خان د خپل پلار برخلاف د بابر په مرسته په ګلکه ولاړ وو- هغهٔ مغل فوځونه د وخت نه اګاه وخبردار کړل - او دغه شان هغوی د تباهئ نه بچ شول- چه دولت خان د بابر د مرستے نه انکاری شو نو علاوالدین ته خپله معامله نرمه ښکاره شوه- هغه بیا کابل ته لاړ او بابر ته ئے خواست اوکړو چه د دولت خان او غازی خان د تباه کولو نه علاوه د ابراهیم تابیا هم ضروری ده - په دے صورت کښې چه ابراهیم د مینځ نه اوځی او د دهلی په تخت علاوالدین متمکن شي- نو بابر دِ په ډيرے خوشحالئ د پنجاب صوبه په خپل سلطنت کښې شامله کړی- د دے په حقله بابر داسے وائی :-

"عالم خان په کابل کښې زما نه رخصت واخست-او اګرچه دګرمئ موسم وو-او د هغهٔ ملګرو ته ډیر تکلیف وو- بیا هم هغهٔ د ورځے دوه دوه منزلونه اووهل او لاهور ته په تادئ رااورسید- په دے ورځو کښې ازبک سردارانو په بلخ کښې پیش قدمی کړی وه- نو زهٔ د هغوی د مدافعت په غرض هورے لاړم - عالم خان په لاهورکښې زما سردارانو ته اووے چه دوی دِ دَ غازی خان په ملګرتیا کښې په اګره حمله اوکړی - دا د بادشاه حکم دے- خو زما سردارانو ورته اووے موږ په غازی خان څنګه اعتبار اوکړو- موږ ته بادشاه داحکم راکړے دے چه ترڅو هغه دربارِکابل یا لاهور ته یرغمل را او نهٔ لیږی تر هغے د هغه مرسته نهٔ ده پکار- بله دا چه هغهٔ تاله شکست درکړے دے - نو تهٔ په کوم وسترګو هغهٔ سره ملګرتیا کوے؟ او د دے ملګرتیا به فائده څه وی ؟- د دے نه پس عالم خان خپل ځوئے شیر خان، دولت خان او غازی خان ته اولیږلو - او په خپل مینځ کښې دا سازش اوکړو چه دولت خان او غازی خان دِ د پنجاب ټولے قلاګانے سمبالے کړی او عالم خان دِ دَ نورو امیرانو په ملګرتیا کښې په دهلی او اګره قبضه اوکړی- د دے تجویز مطابق عالم خان د خپلو امیرانو په ملګرتیا کښې د

دیرش زره فوځ سره د دهلی په لور روان شو - او د دهلی نه چاپیره پریوت -

سلطان ابراهیم چه د دے نه خبرشو نو هغه هم دمقابلے په نیت رااووت - اګرچه ابراهیم لودی دخپلو امیرانو سره سښهٔ سلوک نهٔ کولو - لیکن په دے نازکه موقع چه د علاؤالدین او د هغهٔ ملګرو امیرانو چه کوم اقدام اوکړو - هغه هم انتهائی غداری او نمک حرامی وه - او چونکه دے امیرانو ته د دے خپلے غدارۍ احساس وو - نو دوئ دا غوره اوګڼله چه د ابراهیم په فوځونو د شپے په تیارهٔ کښے حمله اوکړی - ځکه چه د ورځے په رڼا کښے دوی د ابراهیم سره سترګے نهٔ شوے مخامخ کولے - په دے غرض هم د ابراهیم د فوځ ځنے امیرانو د هغهٔ سره غداری اوکړه - او د باغی امیرانو ملګری شول - په وروستی پهرکښے د علاؤالدین فوځ په شاهی کیمپ شبخون اووهلو - لیکن سلطان ابراهیم د دوی د دے حملے هیڅ پرواه اونهٔ کړه - او د سحرپورے د خپلے خیمے نه رااونهٔ وتلو - د علاؤالدین فوځ په لوټ کښے لګیا شو - دغه وخت شاهی فوځ په دوئ حمله اوکړه - او باغی امیران سره د عالم خان تهول او تنبتیدل - دغه وخت بابر په دوباره د هند د حملے په غرض پنجاب ته راغلے وو - د شکست نه پس عالم خان د خپلو ملګرو سره په ستلج پورے وتو - او په یو غرنیزه قلا کښے ئے پناه اونیوله -

لکه چه مو اووئیل د پښتنو د دے بے اتفاقۍ او د دولت خان او عالم خان د دے برغندے غدارۍ په وجه د بابر تلو سے راژوندۍ شوے وے - او هغهٔ تر پنجاب پورے د کړاؤ نه بغیر رارسیدلے وو - لیکن چه د دولت خان منصوبه ناکامیابه او هغه د بابر مخالف شو نو بابر دا غوره اوګڼله چه په آخری وار قسمت آزمائی اوکړی - چنانچه بابر د کال ۱۵۲۵ء د دسمبر په میاشت کښے د کابل نه د هند د حملے په غرض راروان شو - او خیبر ته راغے - دغه وخت کښے د بابر ځنے فوځونه د پنجاب په ځنے قلاګانو د خپلو سردارانو ماتحت محصور وو - او د هغوی خلاصول او ازادول د بابر ضروری فرض -

بابر په علی مسجد کښے کیمپ اولګؤلو - د دے په حقله بابر داسے وائی :-

" زهٔ همیشه په یوه د یه خپله خیمه لګوم - د شپے لاندے په کیمپ کښے چه اورونه بل شول نو یو عجیبه رڼا وه چه د چراغان په شان مزه ئے کوله - په داسے موقع زهٔ ضرور شراب څښم - دلته ے هم اوڅښل - د سحر کید و نه اول ے معجون اوخوړل - او بیاے روژه اونیوله - بله ورځ د کیمپ نه د ګینډ یو ښکار ته لاړو - د بګرام (پیښور) سره نژدو په " رود سپاه " (باړه) پورے وتو - په دغه اشاکښے په جارو بوټو کښے یو ګینډے

ښکاره شو۔ همایون او د عزو نو نورو خلقو ګینډې چرته نهٔ وو لیدلے۔ د هغوی د پاره دا یو ښه تماشه وه۔ یو کروه په هغې پسے تګ اوشو۔ او په غشو اوو یشتلے شو۔ هغه او دوه نور ګینډې اوښوولے شول۔ د ډیرو ورځو نه زما دا خیال وو چه د هاتي او ګینډې مقابله به څه رنګ وی؟ په ښکار کښے یو مهاوت هاتي راوستلو۔ ګینډې په هاتي جپته او وهله۔ ولے بیا او تښتید لو۔

۔ بهم په دغه ورځ موښ په بگرام (پلېښور) کښے یو څو سرداران مقرر کړل چه هغوی په سیند باندے د پورے کید لو د پاره د کشتیو انتظام اوکړی۔ او د ټولو فوځیانو نومونه اولیکی۔ بل پړاؤ موښ د کابل سیند په غاړه اوکړو۔ دلته موښ خبر شو چه دولت خان او غازی خان دیرش زره فوځ جمع کړے دے۔ او ،، کلا نور ،، ئے فتح کړے دے۔ او اوس د لاهور په تګل رارواں دی۔ یو قاصد موښ په ډیرے تادۍ اولیږلو۔ او خپلو سړو ته مو دا اطلاع ورکړه چه موښ منزل په منزل رارواں یو۔ زموښ تر راتلو دِ هغوی جنګ نهٔ کوی۔ د خالی په ورځ موښ په اباسیند پورے شو۔ دلته کښے ټول فوځ چه په هرقسم افرادو مشتمل وو (یعنی سپاهیان او خدمتګاران وغیره) دولس زره حساب شو۔

د بابر اکثر فوځونه په پښتنو مشتمل وو۔ د دے خبرے یو ثبوت دا دے چه د لاهور په سویل د ستلج سیند په دواړو غاړو چه کوم خلق نن ورځ د افاغنه قصوری په نوم یادیږی۔ هغوی په اصل کښے د خویشکو قبیلے سره تعلق لری۔ چه د مهمنزو د قبیلے یوه څانګه وه۔ د دوی قامی روایات دا وائی چه د دوی مشران د بابر په فوځونو کښے د پلېښور نه راغلی وو۔ او د هغه خدماتو په بدل کښے کوم چه دوی د بابر د پاره د پانی پت په جنګ کښے کړی وو۔ دا زمکے د جاګیر په توګه دوی ته ورکړے شوی وے۔ د دے نه علاوه د بابر په فوځونو کښے د پښتنو کثرت د خوشحال خان د یو شعر نه هم معلومیږی۔ ؎

بیاله پاسه د دهلی بادشاه بابر شهٔ　　　　چه ئے کار د پښتانهٔ په برکت وو

او بابر په خپله هم په یو موقع په خپلو فوځونو کښے د پښتنو د شمولیت ذکر کړے دے۔

د اباسیند نه چه بابر پورے شو۔ نو په شپږم پړاؤ د یو ورځے د پاره د سامان رسد د حصول په غرض ایسار شو۔ د دے په حقله بابر دا سے وائی۔

په دغه ورځ موښ عرق اوڅښل۔ ،، ملا پرغری ،، رنګا رنګ قیصئ واورولے۔ د دے نه وړاندے موښ دے دومره په خبرو نهٔ وو لیدلے۔ ،، ملا شمس ،، هم دومره څښلی وو چه د

هوش نه وتلے وو۔ بله ورځ موږ په جهلم سیند په یو پایاؤ ځائے پورے وتو۔ په دے مقام «ولی قرملی» چه موږ سیالکوټ د هغهٔ په تحویل کښے ورکړے وو، راغلو۔ او د سیالکوټ د پرے ښو دلو عذرئے بیان کړو۔ ما ورته اووے چه تا سیالکوټ نهٔ شو ساتلے نو لاهور ته ولے د نورو امیرانو سره نهٔ تلے۔ د دے هغهٔ څه معقول جواب او نهٔ کړے شو۔ لیکن د فوځ کشئ موقع وه نو ما هغهٔ له سزا ورنهٔ کړه۔ د دے ځائے نه ما «سید طوفان او سید لاچین» په ډیر تاکید لاهور ته اولیږل۔ او د هغه ځائے سردارانو ته مے د خپلو راتلو پوځ د جنګ نهٔ کولو پیغام وراولیږلو۔ او ورته مے اووے چه هغوی دِ زموږ سره په پسرور یا سیالکوټ کښے یو ځائے شی۔ دلته ما دا هم واوریدل چه غازی خان ښلو یښت زره لښکر جمع کړے دے۔ او دولت خان دوه تورے ترملا تړلی دی۔ او جنګ ته تیر شوی دی۔ بیا موږ د چناب په غاړه پړاو اوکړو۔ دا ځائے زما ډیر خوښ شو۔ او دا مے اراده اوکړه چه د سیالکوټ واله دلته آبادول پکار دی۔ دلته ما په کشتئ کښے سیل اوکړو۔ شراب مے اوڅښل او معجون مے اوخوړل»

«د جمعے په ورځ موږ په سیالکوټ کښے قیام اوکړو۔ هرځل چه به زهٔ هندوستان ته راغلم نو جاټ او ګوجران به د خپلو عزیزو څټکلونو نه رابښکته شول۔ او غوا مینږے به ئے لوټلے۔ دا بدبخت خلق د دے ملک د پاره یو لوئے مصیبت دے۔ دا ځل ملک موږ په خپله قبضه کښے اخستے دے۔ ولے دے موږیانو بیا لوټ اوکړو۔ ما غلهٔ اوڅټول او یو څو مے ټوټے ټوټے کړل»

«د سیالکوټ نه ما لاهور ته یو قاصد اولیږلو۔ چه هغوی د دشمن حالات معلوم کړی۔ او دا هم چه موږ به د هغوی مقابله څه رنګ کوؤ۔ دلته په پړاؤ کښے یو سوداګر دا خبر راوړو چه علاؤالدین عالم خان د سلطان ابراهیم نه شکست اوموندلو»

د سیالکوټ نه بابر کوچ په کوچ لاهور ته اورسیدلو۔ دشمن د یو جمعیت سره د راوی سیند په بله غاړه موجود وو۔ بابر هم نیغ د هغوی مقابلے ته روان شو۔ لیکن دولت خان او غازی خان د مقابلے کولو نه بغیر اوتښتیدل۔ بابر د هغوی په تعاقب کښے هغه سرداران اولیږل کوم چه د علاقے نه واقف وو۔ او د غازی خان د نیولو تاکید ئے پرے اوکړو۔ ځکه چه غازی خان یو ښهٔ جنګیالے وو۔ بو دا عالم خان خپلو چند روزه ملګرو په ځائے پرے ښودلے وو۔ او هغه په یو عزیزه قلا کښے ناست وو۔ بابر د دے په باب کښے داسے وائی «ما د هزارؤ او پښتنو یو لښکر د هغه قلا د تسخیر په غرض اولیږلو۔ د قلا استوګن په تیاره کښے تښتیدے

ته تیارشوی وو - ولې د هغوی اسونه د قلا په دروازه کښې داسې اونښتل چه وتلې نهٔ شوې. د بدې ورځې عالم خان پیاده اوتښتیدو او غازی خان ته ځان اورسولو - ولې غازی خان د هغهٔ څه خاطرمدار او نهٔ کړو - آخر زما په خدمت کښې حاضر شو؟

د دې نه وړاندې بابر په خپل هراول فوځ پسې د «ملوټ» په لور روان شوې وو - هلته یو غرټیزه قلا کښې دولت خان پناه اخستې وه - د قلا نه تول لښکر تاؤ شو - دپنجاب دا وړاندې صوبه دار دغه وخت په خپلو کارونو پښیمانه وو - هغه د بابر په خدمت کښې دا پیغام رااولیږلو - چه « غازی خان عزونو ته تښتیدلې دې - که ماله معافی راکړې شی نو نو قلا به حواله او په خدمت کښې به حاضر شم» ما خواجه میرمیران هغهٔ څخه اولیږلو چه د هغهٔ د زړهٔ نه ویره لرې کړی - او د خپل ځان سره ئې راولی - هغهٔ خپل ځوئې هم د ځان سره راوستلو - ما دا حکم اوکړو چه کومې دوه تورې ئې زما د جنګ د پاره په ملا پورې تړلې وې هغه دِ اوس په خپل څټ کښې زوړندې کړی - او ماله دِ مخامخ شی - ولې په دې حالت کښې هم هغه لا هغه شان کوږ لرګې وو - په ډېرې چالاکئ بهٔ ئې حیلې بهانې کولې - چه مخامخ شو نو سرئې هم نهٔ ښکته کولو - ما نوکرانو ته حکم اوکړو - چه د پښو نه ئې راکاږئ او تعظیم پرِ اوکړئ - او بیائې زما د وړاندې کښینوئ - بیاې یو سړی ته چه په هندوستانی ژبه پوهید لو - اووئیل چه زهٔ څه وایم هغه لفظ په لفظ ترجمه کړه - اودهٔ دولت خان)له ئې واؤروه - ما اووئیل دهٔ ته اووایه چا ما تهٔ د خپل پلار په شان ګڼلې وې او ستا دتوقع او امید نه هم زیات ستا عزت او احترام کولو - تا او ستا ځامنو ته مې پناه ورکړه - او ستا قوم او عال عیال مې د ابراهیم د قید نه بچ کړل - ستا د پلار د درې کروړو روپو جائیداد مې تا ته پرې ښودلو - بیا راته دا اووایه چه ما تا سره کومه بدی کړی ده چه تا زما د جنګ د پاره دوه تورې ترملا تړلې وې؟ او فوځ دِ راروان کړې وو - او زما په مملوکه علاقو کښې دِ شر فساد پورته کړې وو - ولې بوډا دولت خان د دې هیڅ څه جواب او نهٔ کړو - او په حقیقت کښې د هغهٔ سره څه جواب هم نهٔ وو - ما هغه خواجه میرمیران ته حواله کړو؟

«بله ورځ زهٔ په خپله قلا ته ور د ننه شوم - غازی خان معمولی شان شاعر هم وو[ل] - او په کتابونو ډیر مئین وو - ما په خصوصیت سره د هغهٔ کتب خانه اوکتله - ځنې کتابونه په کښې ډیر ښهٔ وو - څه کتابونه ما همایون ته ورکړل - او څه مې کامران د پاره قندهار ته اولیږل.

---

ل غازی خان یو ښهٔ شاعر او عالم فاضل وو.

د علمي مشالو نور ډیر کتابونه هم وو. ولې دومره بلیش قیمته نهٔ وو. څومره چه زما امید وو. قلعه "ملوت" ما محمد علی "جنګ جُنګ" ته حواله کړه. او دوه سوه یوسف زی پښتانهٔ ے دهغهٔ مدد ته پرے سپودل. "خواجه کلان" د غزنی نه په اوښانو شراب راوړلی وو. موږ. دے نوشیخ جلسه قائمه کړه. چا شراب اوڅښل او چا عرق؟

اوس د بابر په یلغار کښې کې راغلے وو. په دغه ورځو کښې هغهٔ ته دځینې هندوستانی پښتنو امیرانو دوستانه خطونه هم رارسیدلی وو. اوځینې امیران په خپله هم د دهغهٔ په خدمت کښې حاضرشوی وو. د دهلی په لور د سفر په دوران کښې "بوډا عالم خان" دیو قلا نه راوتلے او د اطاعت په غرض پیاده راروان وو. بابرچه د هغهٔ په راتلوخبرشونو د هغهٔ د سورلۍ د پاره ئے اسونه اواستقبال ته سرداران اولیږل. د شاهی خاندان یو قریبی فرد بابر په خپله قبضه کښې ساتل غنیمت ګڼل. او د سیاسی اغراضو مدنظرئےدهغهٔ ښه احترام اوکړو. د دولت خان ځوی دلاورخان د بابر په مرسته کلک ولاړ وو. هغهٔ هم د پلار د پاره معافی او غوښتله. دقیدی امیرانو په فدیه یا معافئ کښې بابرهغه هم په خپلو مشوروکښې شریک کړو.

د سرهند سره نزدو یوګستاخ هندوستانی امیرد بابرلښکر ته راغ. او وے وئیل چه زهٔ سلطان ابراهیم خپل سفیر رالیږلے یم. او د دے په جواب کښې د بابرهم د شهنشاه دهلی دربار ته سفیران اولیږی. بابر خپلو دوو پهره دارانو ته حکم اوکړو چه هغوی د دسفیرانو په ډول د سلطان ابراهیم دربار ته لاړ شی. سلطان ابراهیم دا سړی قیدکړل. لیکن د پانی پت د جنګ په موقع دوی د قید نه اوتښتیدل. د دے نه پس بابر داسے وائی:-

اوس ماد هست په رکاب کښې پښه کیښودله. او د توکل واګے ے په لاس اونیولے. او د ابراهیم لودی چه د سلطان سکندر لودی ځوئے دے. جنګ ته روان شوم. دهغه د هندوستان د ملکونو بادشاه او په دهلی کښې مقیم وو. د هغهٔ لښکر په شمال کښې یو لک او د دهغهٔ او د دهغهٔ د ماتحت سردارانو جنګی هاتیان په شمار کښې یو زر بیانیدل. دلته موږ ته اطلاع راغله چه سلطان ابراهیم د جنګ په نیت د دهلی نه راروان شوے دے. او یو بل لښکر د حمید خان په ماتحتئ کښې د حصار د لوری نه راروان دے. د حمید خان حاکم حصار مقابلے ته بابردهمایون یا ماتحتئ کښې لښکر اولیږلو. په جنګ کښې مغل کامیاب او د حمید خان لښکر تلیښته اوکړه. او د بریالی فوځ په لاس ډیرمال غنیمت راغے. بابر د همایون د دے فتح ډیره قدر افزائی اوکړه. په دے جنګ کښې چه کوم قیدیان مخلونیولی

وو- د بابر په حکم هغه په گولو والوزولی شول۔

د دے واقعاتو نه چه سلطان ابراهیم خبر شو نو هغهٔ ته خپل انجام معلوم شو۔ د بابر سره د فیصله کن جنګ نه اول هغهٔ خپلو ټولو امیرانو او سپاهیانو ته حکم ورکړو چه خپلے بهترینے جامے واغوندئ۔ په خپله ئے هم منقش اومرصع شاهی جنیے او چترونه اودرول۔ او د ټول فوځ عام دعوت ئے اوکړو۔ دغه وخت هغهٔ دخپلے خزانے ټول دولت، جواهرات اشرفئ، ملغلرے، او نور قیمتی اشیا د فوځ په مخکښے اونوستل۔ او هغوی پرِ تالان کړے کړو۔ بیا هغهٔ خپلو امیرانو او فوځیانو ته اُووے=۔

زما دوستانو او ملګریو!

،، صبا به موبز دمغلو سره جنګیږو۔ که چرے ما فتحه اوکړه۔ نو زهٔ به ستاسو د خوشحالولو نورکوششی هم اوکړم۔ اوکه بانیلات ے اوکړو۔ نو تاسو به د دے تحفے او انعام صبر اوکړئ۔ اوکومه اراده چه ما د ستاسو په مخکښے ظاهره کړی ده۔ په هغے یقین اوساتئ ؛؛

سلطان ابراهیم او د هغهٔ فوځیانو دغه ټوله ورځ د مرګ نه بے پرواه په رقص و سرود اوګډا نخاکښے تیره کړه۔ او بله ورځ دوئ د جنګ په نیت رااووتل۔ سلطان ابراهیم د پانی پت په قبله دوه کروهه لاړ او په بل لور د مشرق په لور په دوه کروهه کښے بابر خپل کیمپ اولګولو۔ او د بابرِ فوځ ځلیرېشت زره او ورسره توپے او توپکونه هم وو۔ د ابراهیم سره پنځوس زره فوځ او یو زر جنګی هاتیان وو۔ لیکن په جنګی مهارت کښے بابر په ابراهیم لودی غلبه وو۔ او د هغهٔ د بریالیتوب لوئے سبب هم د هغهٔ جنګی قابلیت وو۔

په ۲۰ اپریل ۱۵۲۶ء مطابق ۸ رجب ۹۳۲ھ دواړه فوځونه سره مخامخ شول۔ د ابراهیم سور فوځ په ابتداء کښے په داسے شدت حمله اوکړه چه د مغل فوځ په مورچه بندئ ورننوتل۔ پښتانهٔ امیران که هر څو د ابراهیم د رویّے نه ناراض وو۔ لیکن د جنګ په میدان کښے هغوی د سرومال نه بے پرواه اوجنګیدل۔ او مغل فوځ ئے ګډ وډ کړو۔ خصوصًا د بابر د فوځ کیڼ ارخ ئے په خطره کښے اوغورزولو۔ لیکن د بابر د ښی اړخ فوځ یو ارت میدان ته رااووتلو۔ او د سلطان ابراهیم د فوځ په بازوئے د وروستو نه حمله اوکړه۔ ماسپخین مال د ابراهیم د فوځ بل بازو هم مغلو په مینځ کښے ګیر کړو۔ اوس دغه فوځ د مغل فوځ د تیراندازو او ګوله اندازو په براه راست زد کښے راغلے وو۔ او ډیر په

په خطره کښې وو. دغه وخت کښې سلطان ابراهیم د خپل محافظ پنځه زره فوځ سره یو طرف ته ولاړ وو. چه محمود خان نومې یو امیر هغهٔ ته داسې اووے :-

" زموږ معامله کمزوری ده. ستاسو د پاره دمیدان نه تلل غوره دی. که چرے بادشاه سلامت وی نو د یو بل فوځ جوړول به ډیر آسان او دمغلو خلاف جنګ جاری ساتل به ممکن شي. او موږ ته به زر داسې موقع په لاس راشي چه موږ به خپل مراد ترسره کړو. دا زما رائے ده. او چه څه د بادشاه خوښه وی هغه به ښه وی. ددے په جواب کښې ابراهیم دا اووئیل :-

" اؤ محمود خانه ! دا د یو بادشاه د پاره د شرم خبره ده. چه هغه دِ دَ جنګ دمیدان نه اوتښتی. اوګوره زما ملګرو او زما نیک خوا هانو او دوستانو ټولو د شهادت شربت نوش کړو. یو دے په وینو کښې رنګ ښک پروت دے بل دوړے په خاورو کښې لړلے تپلے په دے حال کښې زهٔ دا خپل دوستان څنګه پرے ښودے شم. اوګوره زما د اس پښې ترسینے پورے په وینو لړلی دی. کوم وخت چه زهٔ بادشاه ووم ما په خپله مرضئ حکومت کولو. اوس چه قسمت د مغلو طرفداری اوکړه نو په ژوند کښې زما د پاره کومه خوشحالی پاتے شوی ده. ددے نه خو دا ښه ده چه څه رنګ او چرته زما دا دوستان دی هغه شان زهٔ هم په خاورو وینو کښې لړلے تپلے او ددوی ملګرے شم."

ددے نه پس سلطان ابراهیم د خپلو پنځو زرو سورو سره د جنګ ګرم میدان ته ور دننه شو. او ډیر په بهادرئ اوجنګیدو. د هغهٔ پښتانهٔ امیران اګرچه د هغهٔ نه ناراض وو. لیکن په جنګ کښې هغو هم څه قصور او نهٔ کړو. چه ورځ په ختمیدو شوه نو دغه وخت کښې سلطان ابراهیم د خپلے وینا مطابق په وینو کښې رنګ ښک پریوتو. چه بابر د هغهٔ د مرګ نه خبر شو نو دابراهیم دشناخت او د هغهٔ د مرګ د تصدیق د پاره ئے ددولت خان لودی ځوئے دلاور خان د خپل یو امیر خواجه کان سره د مقتولینو په لور اولیږلو. او هلته هغوی مقتدر سلطان ابراهیم په وینو کښې لړلے تپلے اولیدلو. شاهی تاج ئے د سرنه پرېوتلے وو. او دحکومت شاهی چتر په خاوړو کښې لړلے پروت وو. د بابر امیر خواجه کلان د سلطان ابراهیم نه په مرونی سر پریکړو. او بابر ته ئے راوړو. ددے نه پس د بابر په حکم سلطان ابراهیم د نورو مقتولینو سره په هغه ځائے کښې چه کوم ځائے وژلے شوے وو. دفن کړے وو.

د پانی پت جنګ یو فیصله کن جنګ وو. په دے جنګ سره په هندوستان کښې دمسلمانانو

دحکومت هغه دورختم شو چه دهغې آغاز هم پښتنو کړے وو۔ او انجام ئې هم په پښتنو اوشو۔ په دے جنګ کښې د پښتنو د شکست غټه وجه دا وه۔ چه دابراهيم طرز عمل په پښتنو کښې د اتفاق و اتحاد جذبه ختمه کړی وه۔ د دے نه علاوه د دولت خان او علاؤ۔ ـالدين عالم خان غداری هم د دے يو لوئې سبب کيدے شی۔ د دے دواړو اميرانو دخپلو ذاتی مفادو او اغراضو پيش نظر بابر ته په هند باندے د حملے دعوت ورکړو۔ او دغه شان ئې د خپل کور دے اتفاقئ نه بابر خبر کړو۔ او د هغهٔ خوا او غزيدله۔ د دے شکست ظاهری سبب د بابر توپ خانه او ټوپکونه وو۔ د دے نه علاوه د مغل فوځ تيرانداز هم ډير ماهر وو۔ د بابر د فوځ ګوله بارئ او تيراندازئ ته د ابراهيم رساله ټينګه نهٔ شو۔ او د بابر د باقاعده فوځ جنګی تدبيرونه د پښتنو په ذاتی شجاعت او مردانګئ غالب شول۔

د دے فتح نه پس په ۲۷ اپريل ۱۵۲۶ء۔ ۱۵ رجب ۹۳۲ھ په اوله جمعه د بابر نوم په خطبه کښې اولوستلے شو۔ او د دے ورځې نه په هندوستان کښې د مغل حکومت آغاز او شو۔ اګرچه بابر به خپل ځان ته مغل وئيل هرګز نهٔ خوښول۔

زما په خيال کښې د پانی پت په جنګ کښې د بابر د بريالیتوب او د ابراهيم د شکست وجه صرف دا وه چه د بابر دواړه مټې مضبوط وے۔ يعنی د هغهٔ خپل قام (مغل) د هغهٔ وفادار او جانثار وو۔ په بل لور پښتانهٔ هم رلکه يوسف زی، مهمنړی او خويشکی) د هغهٔ په مرسته ولاړ وو۔ د ابراهيم د خپلے کورنئ يو اهم غړے دلاور خان د بابر کلک ملګرے ؤو۔ او د هغهٔ نه علاوه نور هندی پښتانهٔ اميران هم د هغهٔ ملګری شوی وو۔ په بل لور د ابراهيم خپل پښتانهٔ هم مغل شوی وو۔ د هندوستان د عظيم سلطنت د فتح تلوسے د بابر اميدونه تاند کړی وو۔ او د هغهٔ حوصلے او چتے کړے وے۔ ولے د ابراهيم نه خپلو خلقو مټې پرے کړے وے۔ او هغه ئې د مايوسئ سيند ته غورځولے وو۔ ابراهيم د بابر مقابلے ته د هغهٔ نه دګټې په نيت نهٔ وو راغلے۔ بلکه په دے غرض راغلے وو چه په دے جنګ کښې به هغهٔ په ابرمندانه طريقه د خپل ناکام او د مايوسئ نه ډک ژوند ته خاتمه ورکړی۔

د بده مرغه ابراهيم د هغه ټولو خويونو نه خالی وو کوم چه د هغهٔ په پلار او نيکهٔ کښې وو۔ هغه يو ځود رايه او په اصلی معنو کښې د استبداد حامی وو۔ د هغهٔ ټول عمر د خپلو اميرانو سره په کشمکش کښې تير شو۔ ليکن د دے بدو خويونو باوجود هغه د پښتنو د مخصوصو اخلاقو نه خالی نهٔ وو۔ د پانی پت په ميدان کښې د تيښتے په ځائے هغهٔ سر ورکول

غوره کړل - اګرچه هغه تښتيدلے شو - او د تيښتے مشوره هم ورکړے شوی وه - ولے دده په جواب کښے چه هغهٔ څه وئيلی وو د هغے نه د هغهٔ استقلال او جرأت څرګنديږی - دا ممکنه ده چه که هغه تښتيدلے وے نو کيدے شوے چه هغهٔ بابر ته مشکلات پيدا کړے وے - او بابر په هندوستان باندے قبضه قائم ساتلو کښے نهٔ وے کامياب شوے - لکه چه د پانی پت د جنګ نه پس چه سمدستی د بابر فوځونه د عارضی مشکلاتو نه ډير وارخطا شوی وو - او د کابل تلو ته ليواله شوی وو - ليکن د جنګ د ميدان نه تيښته کول د پښتنو په آئين کښے لوئے جرم ګڼلے شی - او په ابراهيم کښے که نور هر څو مره عيبونه وو - ولے هغهٔ خپل ځان د دے لوئے جرم توره دار نهٔ کړو - او په ډيرے بهادرئ ئے خپل سر داؤ کړو -

د سلطان ابراهيم د حکومت اهم خصوصيت دا دے چه دده په وخت کښے د ضرورت څيزونه نهايت ارزان وو - او په ډير لږ آمدن به ګذاره کيدله - اګر چه د اشيائے ضرورت ارزانی د سکندر لودی په زمانه کښے هم وه - ليکن د ابراهيم لودی په وخت کښے په حيرت انګيز ډول ارزانی وه - او دا په دے دلالت کوی چه اګرچه هغه د خپلو اميرانو په حقله خوښهٔ نهٔ وو - ولے د عوامو د مفادو نه ئے په هيڅ وخت کښے بے پروائی نهٔ وه اختيار کړی - د پانی پت د جنګ نه پس په هند کښے مغل سلطنت قائم شو - او د هندوستان د تاريخ يو لوئے دور شروع شو -

ښاغلے « کيرو » د لودی کورنئ په حقله داسے وائی چه « د صوبه سرحد د تاريخ د يو طالب علم د پاره په لودی سلطنت کښے د اهميت څه خبره نشته » د دے ښاغلی په خيال کښے « په دے بادشاهانو کښے د شيرشاه په شان هم څوک د لوړ شخصيت او غير معمولی قابليت خاوند نهٔ وو » ولے زما په خيال کښے داسے نهٔ ده - د پښتون قام د تاريخ د يو طالب علم د پاره د لودی کورنئ د سلطنت په واقعاتو کښے د اهميت ډيرے خبرے دی -

د پښتنو په تاريخ کښے د لوديانو د اهميت وړومبئ خبره دا ده چه د پښتنو د سياسی عروج آغاز هم د دے قبيلے نه شوے دے - لکه چه د سبکتګين په عهد کښے مونږ د دے کورنئ په ملتان کښے د رياست حال لوستلے دے - په پښتنو قبائيلو کښے لوديان او غلجيان اول پښتانهٔ وو چه اسلام ئے قبول کړے او د اسلام په خوړولو کښے زيارونه ايستلی دی - لکه چه د شيخ رضی لودی د حال نه واضحه ده - دغه شان دا هندی لوديان او غلجيان

اول د پښتنو بادشاهانو وو. چه د دوی په حقله په یقین سره ویلے شو چه د دوی مورنۍ ژبه پښتو وه. دا خبره هم د فکر وړ ده چه دا د بهلول لودی د دوراندیشۍ او لوړ شخصیت نتیجه ده چه هغه د خپل شاهی فرمان په ذریعه د "روه" پښتانه هند ته اوغوښتل. او د پښتنو د داسے پالنه اوکړه چه د "روه" پښتنو هندوستان خپل وطن اوګرځولو. او د دے په نتیجه کښے شیرشاه هم پیدا شو. که چرے د بهلول په کورنۍ کښے بهلول یا شیرشاه په شان څوک بل پیدا شوے وے نو ممکنه ده چه د هند تاریخ د مغلو د ذکر نه خالی پاتے وے. د "روه" د پښتنو په حقله چه شیر شاه په آخری ورځو کښے د کوم خواهش اظهار کړے وو. په حقیقت کښے د دغه پالیسۍ بانی بهلول لودی وو. په دے بنا زما خیال دے چه بهلول لودی د ډیر لوړ شخصیت خاوند وو. او د پښتنو په حقله چه دغه کومه پالیسی اختیار کړی وه. هغه په دوراندیشۍ مبنی وه. د دے نه علاوه که چرے موږ د لودی کورنۍ د بادشاهانو اخلاقو او د دوی د سلطنت واقعاتو ته په ژور نظر اوګورو نو د دوی د سلطنت تاریخ د پښتون قام د رنګا رنګ قامی خصوصیاتو یوه داسے هنداره ده چه په هغے کښے موږ پښتانه په خپل اصل شکل کښے لیدے شو. او دا د دے کورنۍ د اهمیت یو لوئے سبب دے.

# ظهیرالدّین محمد بابر

بابر په ترکۍ ژبه کښے زمری ته وائی۔ او ظهیرالدین محمد د دے لقب حقدار وو. د پلار نامه ئے عمر شیخ مرزا ده۔ بابر د پلار د لورى نه د تیمور په پنځمه پیړۍ کښے او د مور د لورى نه د چنګیزخان په څوارلسمه پیړۍ کښے وو۔ په دے توګه د هغهٔ په رګونو کښے د دنیا د دوؤ لویو فاتحانو وینه شامله ده۔ او دا د تعجب خبره نهٔ ده چه بابر د شپاړسمے صدۍ یو لوئے فاتح اوګرځیدلو۔ قدرت هغهٔ ته هغه ټول صفتونه ورکړی وو کوم چه د ملکونو د فتح کولو د پاره پکار دی او د دے صفتونو په برکت هغهٔ یوائے په خپله زمانه کښے نه بلکه په هره زمانه کښے یو څرګند او لوړ مقام موندلے دے۔

بابر په کال ۱۴۸۳ء کښے په فرغانه کښے پیدا شو۔ او د دولسو کالو په عمر کښے د پلار په وفات د فرغانے حکمران شو۔ ولے د تخت نشینۍ سره سم په مشکلاتو کښے ګیر شو. د بابر په شان د دولسو کالو د یو هلک د پاره دا خبره ډیره ګرانه وه۔ چه د خپلو خپلوانو د مخالفت او دښمنۍ نه د خپل ځان او د خپل ریاست ساتنه اوکړی۔ خپلو عزیزانو او رشته دارانو قدم په قدم د هغهٔ مخالفت شروع کړو۔ او د هغهٔ هره منصوبه ئے ناکامیابه کړه۔

بابر د وړوکوالی نه د سمرقند د فتح کولو تلوسه لرله۔ او دا ئے لویه آرزو وه۔ چه د خپل نیکهٔ د ګدۍ ځائے په خپله قبضه کښے راوستلے۔ دا موقع هغهٔ ته ډیر زر په لاس ورغله۔ یعنی د خپلے تخت نشینۍ نه درے کاله پس په کال ۱۴۹۷ء کښے هغهٔ په اول ځل سمرقند فتح کړو۔ په دے فتح هغهٔ دومره خوشحال وو چه د هندوستان د فتح خوشحالی هم د هغهٔ د زړهٔ نه د سمرقند یاد هیر نهٔ کړے شو۔ ولے بابر چه څومره زر خوشحالی حاصله کړی وه۔ هغومره زر د هغهٔ ټولے منصوبے او تجویزونه بیکاره

شول - د فرغانې د اميرانو سازشونه او د بابر بې وخته ناجوړتيا د هغهٔ توله لوبه وړانه کړه - سمرقند او فرغانه دواړه د هغهٔ د لاسه اووتل - او دربه ديکه شو - ولې بابر د زمانې هرې ناکړدې ته خپله سينه ډال کړې وه - په سمرقند ئې بيا حمله اوکړه - او سمرقند ئې بيا ترلاسه کړو - خو قسمت لا هغه شان د بابر نه مرور وو - په کال سنه ۱۵۰۱ع کښې سمرقند او فرغانه دواړه د هغهٔ د لاسه اووتل - او داسې اووتل چه بيا ئې د راستنولو څه امکان نهٔ وو - د دې نه پس بابر درې کاله په ډيرکړاونو او زحمتونو کښې تيرکړل - تر دې چه خپلو خپلوانو او دوستانو هم د هغهٔ د مرستې نه لاس واخستو -

بابر چه د خپل آبائې رياست د حصول نه مايوسه شو نو د کابل مخه ئې اونيوله په کال سنه ۱۵۰۳ع کښې د کابل حاکم الغ بيگ مرزا چه د بابر تره وو مړ شوې او د هغهٔ په مرگ په کابل کښې شرونه فسادونه پورته شوی وو - او «مقيم» نومې يو امير چه د شاه بيگ (ارغون) ورور وو په کابل قبضه کړې وه - بابر په کابل حمله اوکړه - او بې کړاوه کابل په لاس ورغلو - (سنه ۱۵۰۴ع) -

په کابل کښې بابر شل کاله حکومت اوکړو - د دې ښار سره د هغهٔ ډيره مينه او د دې ځائې آب وهوا ئې ډيره خوښه وه - د دې ځائې د آب و هوا په باب کښې بابر داسې وائي :-

" د کابل آب و هوا دومره لطيفه ده چه داسې به د بل يو مقام هم نهٔ وی - د اوړي په موسم کښې هم بې د پوستين اغوستلو نه سړې نهٔ شي اوده کيدلې - په ژمي کښې دلته ډيره واوره کيږی - ولې بيا هم موسم ډيريخ نهٔ وی - اگرچه د سمرقند او تبريز هوا هم ښه ده ليکن هلته بې شانه يخنی وی - "

د کابل په صفت کښې بابر د فراخدلۍ نه کار اخستې دې - د دې ځائې چينې او د چينو په غاړه چينارونه ، ځائې په ځائې باغونه ، قسم قسم ميوې ، د کابل د پسرلي موسم او رنگا رنگ گلونه ، عرض د دې ښار هر يو څيز د بابر په نظر کښې دلفريب وو - د غه وجه ده چه هغه د خپل آخري آرام گاه د پاره هم د غه ځائې خوښ کړې وو -

ډير زر بابر دا خبره معلومه کړه چه کابل يو داسې وطن دې چه کافي غله نه پيدا کوي - او له بدې ورځې د غزنيز و قبائيلو نه غله راوړل غواړی - دا يو داسې معاشي مسئله وه چه هغهٔ تر آخره پورې د دې څهٔ موزون علاج اونهٔ کړې شو - اگرچه دا وټلې

شي چه بابر چه په اول ځل د خیبر په دره راواوښتلو ـ او د اباسیند غاړې ته راغی نو هغه دا اراده اوکړه چه په هندوستان کښې ورننوځي ـ لیکن دا خبره درست نه معلومیږي دغه وخت د هغه ګډ وډ فوځ صرف د لوټ په غرض راوتلي وو ـ او مقصد ئې دا وو چه د کابل د علاقې نه بهرغله او مال مویشي لوټ کړي ـ او د خپل ځان او د کابل د خلقو څه بندوبست اوکړي ـ په دې ورځو کښې د هغه سره د اعتماد قابل یو امیر هم نه وو ـ چه هغه په کابل کښې د حفاظت په غرض پرېښودلې وې ـ د دې نه علاوه د هندوستان د زمکې په وړومبۍ نظاره چه هغه کوم تاثرات ظاهر کړي دي د هغې نه هم څه زیاته مینه او جوش نه څرګندیږي ـ دا تاخت په ۱۵۰۵ء کښې شوې وو ـ د دې په حقله بابر داسې وائي :-

ما هندوستان نه وو لیدلې ـ اوس چه مې اولید و نو یوه بله دنیا ده ـ واښه ، اونې ، ځناور ، مارغان هرڅه په نوي رنګ او نوي شان ـ د خلقو اوضاع او دودونه دستورونه بلکل جدا ـ غرض په لیدو ئې سړې حیران شي ـ او د حیرانۍ خبره هم ده ـ"

په هرحال د کابل د فتحې نه یو کال پس په ۱۵۰۵ء کښې بابر د علاقې د باج او مال غنیمت د حصول په غرض د خیبر په دره راواوښتلو ـ او د جم (جمرود) په مقام ئې کیمپ اولګولو ـ بیا د دې ځائې نه د بګرام (پېښور) سیل ته راغی ـ د بګرام د سیل په وخت کښې د هغه رهبر "ابوسعید" باګرامي وو ـ بابر د ګورګټړۍ شهرت اوریدلې وو ـ او خپل رهبر ته ئې د ګورګټړۍ د کتلو خواهش ظاهر کړو ـ ولې د هغه رهبر د ګورګټړۍ نه لاعلمي ښکاره کړه ـ دغه وجه وه چه بابر په دې موقع د ګورګټړۍ سیل اونه کړو ـ په واپسۍ کښې د جمرود په مقام ابوسعید د بابر یو امیر ته اووې چه ما ته ګورګټړۍ معلومه وه لیکن په تنګو غارونو کښې د کوزیدو له ویرې نه منکرشوې ووم ـ هغه امیر سمدستي دا خبره بابر ته اووئیله ـ ولې بابر د ګورګټړۍ کتل بلې موقع ته پرې ښودل ـ

اګرچه د دې مهم مقصد په اباسیند پورې وتل او د پنجاب په علاقه کښې تاخت کول وو ـ ولې د امیرانو په صلاح بابر خپله اراده بدله کړه ، او د خپل یو امیر "باقي چغانیاني" په وینا ئې د "کوهټ" (کوهاټ) لوټل غوره کړل ـ دې امیر د کوهاټ د دولت خبرې بابر ته ښاغلته کړې ـ او د خپلې وینا په مرسته کښې یو څو کابلي سوداګر هم پیش کړل ـ په دې ورځو کښې د پېښور په خوا وشا علاقو کښې ګګیاني پښتانه آباد

وو - دا خلق د بابر د تاخت له ویرې نه غرونو ته تښتیدلی وو - د دې قبیلې یو مشر یحيیٰ خان په خیبرکښې د بابر په خدمت کښې راغلو - د غه شان د دې قبیلې یو بل ملک خسروخان هم د بابر په خدمت کښې حاضر شو - د کوهاټ د تاخت په دوران کښې دا دواړه ملکان هم د رهبرانو په شکل کښې د بابر ملګري وو - بابر د جمرود نه نیمه شپه روان شو - او کچه عزمه کوهاټ ته اورسیدهٔ - او په لوټ ئې لاس پورې کړو - ډیرې غوا میښې ئې اولجه کړې - څنې پښتانهٔ ئې هم اونیول - ولې بیا ئې پریښودل - په کوهاټ کښې څه رنګ چه د بابر طمع وه هغه شان د هغهٔ په لاس نغد مال رانغلو - "باقي چغانیاني" چه د هغهٔ په وینا باندې په کوهاټ تاخت شوې وو - په خپله خبرې ډیر کچه شو - بابر په کوهاټ کښې د خلقو په کورونو کښې پریوانه غلې اولیدې - ولې د بابر څو صرف غله پکار نهٔ وه - بلکه نغد دولت ئې هم پکار وو - او نغد دولت د کوهاټ د خلقو سره نهٔ وو - په دې وجه بابر بې طمع شانتې شو - (د کوهاټ د خلقو سره دا نغد دولت نن هم نشته او د بابر د وخت هغه پریوانه غلې هم نهٔ لري -) په کوهاټ کښې بابر دوه ورځې او دوه شپې پاتې شو - دلته د بنګښو پښتنو د وهلو او لوټلو او د خوملې (برمل) په لارغزني ته د تلو صلاح اوشوه -

د کوهاټ نه بابر د انګو (هنګو) په لور روان شو - رهبرئې هم هغهٔ ابو سعید ګبرامي وو - چه د ټولو لارو نه ښهٔ خبردار وو - د بنګښو او بابر اولا مقابله غالبًا چه د "استرزو او ریسان" ترمینځه اوشوه - بابر بریالے شو - او هغهٔ د مقتو لینو (پښتنو) د کپرټیو نه موناره جوړه کړه - نور پښتانهٔ پرې په غاړه او وابنهٔ په خُله د بابر په خدمت کښې حاضر شو او معافي ئې اوغوښتله - په هنګو بیا د پښتنو او بابر ترمینځه جنګ اوشو - ولې څوند ئې اونکړو - دلے هم د پښتنو د مرټیو نه مناره جوړه کړې شوه - د مقتولینو د کپرټیو نه د منارې جوړولو رواج په مغلو کښې د چنګیز خان د زمانې نه شروع شوې وو - د هنګو نه بابر تل ته لاړ - دلته هم د پښتنو سره څوک ځپیړه اوکړه -

په تل کښې بابر خپله اراده بدله کړه - او د بنوں لارئې اونیوله - د بابر د وینامطابق د بنوں او اباسیند ترمینځه کرلاني، کیوی، سوراني[1]، عیسے خیل او نیازي پښتانهٔ اباد

---

[1] د کیری او سوواني قبیلو نه مراد بنوڅي پښتانهٔ دی -

وو- دکرلاني نه به د بابر مراد شايد چه ختک وی - دغه قبيله په کرلاني پښتنو کښې يو مهمه قبيله ده- په بنوں کښې بابر دکيوی قبيلے سنګر اووهلو- او د دے خلقو دکپړئيو نه ئے موناره سازه کړه- دکيوی قبيلے يو ملک شادی خان وابنهٔ په خله او پړے په غاړه دبابر په خدمت کښې حاضر شو او د خپلو اميرانو د خلاصی درخواست ئے اوکړو- دا درخواست منظور شو او اسيران پرينبودلے شول-

په بنوں کښې د دشت يعنی د ډيره جاتو د وهلو صلاح اوشوه. بابر د خپلے ډلے سره عيسیٰ خيلو ته لاړ- دے خلقو د بابر د ويرے نه کلی خالی کړی وو- دلته کښې ډيرے ګړے بيزے اولجه کړے شوے- عيسیٰ خيلو د شبخون اراده کړی وه- ولے بابر هم ښهٔ احتياط کړے وو- په دے وجه د عيسیٰ خيلو شبخون کامياب نهٔ شو- په دشت کښې غالبًا د ټانک په خوا وشا کښې د پښتنو د رخت سوداګران اولوټلے شول- او يو معتبر سوداګر خواجه خضر لوهاني د " سيدی مغل " د لاسه اووژلے شول- د دے نه پس بابر د خپل فوځ سره د کوهِ سليمان په لمنه کښې د ډهوکی په لار غزنی ته لاړ- په دے سفر کښې بابر د " آب ايستاده " په ليدو ډير خوشحال شو- د دے په حقله هغه داسے وائی:-

" د ولاړو اوبو يو عظيم ګادر زموږ په مخکښې خور وو- اوبو د اسمان سره خبرے کوّلے او د لرے لرے کنارو ډبے به په کښې اپوته ښکاريدے- لږ لږ ساعت پس به د اوبو او اسمان ترمينځ څه سور سور شان څيز ښکاريدلو، او غيبيدلو- چه موږ نزدے شو نو معلومه شوه چه هغه د زانهو سيلونه وو- ولے دلته يواځے زانے نهٔ وے بلکه د دے اوبو په غاړه رنګارنګ او قسم قسم نور مارغان هم وو" د خپل عادت مطابق بابر د دے ولاړو اوبو (آب ايستاده) نه تر هغه وخته وړاندے نهٔ شو- ترڅو چه ئے د دے په حقله مکمل تحقيق نهٔ ووکړے- په دے ډول د بابر دا مهم ختم شو-

داحقيقت چه دے پښتنو قبائيلو نه خو د بابر اقتدار ته او نهٔ د هغهٔ نه وړاندے د بل کوم حکمران اقتدار ته غاړه اېښې وه- د بابر د ځلے وينا څرګند ده- د بنګښو په حقله بابر داسے وائی- د بنګښو قبائيل د لارے نه يو طرف ته آباد دی- دا خلق په رضا صلاح ماليه نهٔ ورکوی- ولے زهٔ د ډيرو اهموکشالو په وجه لکه په مثال د بدخشان، قندهار او هندوستان د فتوحاتو د تابيا او انتظام په وجه ډير مصروف يم- او دا موقع نهٔ مومم چه د دوی مستقله فيصله اوکړم- ولے که چرے الله پاک زما دا خواهشات پوره کړل نو زهٔ به په خپل اولين فرصت کښې د دے علاقے خبره خلاصوم- او د دوی د لوټ مارو

ګوانډیانو خبر به هم اخلم .» دغه شان په یو بله موقع د وزیرو پښتنو په حقله دا سے وائی .» وزیر پښتانهٔ په خراج کښے ډیر مست او بے قاعدے دی. دوئ په دے موقع درے سوه ګډے د خراج په ډول پیش کړے. ولے زهٔ به د دوئ خبر اخلم :» خو دا حقیقت دے چه د دے قبائیلو کښے د بابر خواهشات د دهغهٔ په ژوند کښے پوره نهٔ شول. او د دے قبائیلو په هر مهم کښے دهغهٔ خپله ناکامی د نورو اهموکشالو د سرانجام کولو په پرده کښے پټه کړی ده. او د هغهٔ اولاد هم چه هغوی ته د دے پښتنو ایل کول په میراث کښے پاتے شوی وو. دا قبائیل په خراج ورکولو مجبور نهٔ کړے شول.

په کال ۱۵۰۷ع کښے بابر د غلجي پښتنو په مهم روان شو. دا پښتانهٔ د بابر او د قندهار دواړو د اقتدار نه آزاد وو. چه » سرده « نومے مقام ته بابر اورسید. نو هغهٔ ته اوویلے شول. چه د یو فرسنګ په فاصله مهمند پښتانهٔ ډیر غافله پراتهٔ دی. د هغوی لوټل ښکار دی. ولے بابر د دے نه انکار اوکړو. او وے ویل چه زما د پاره د خپل رعیت لوټل ناممکن دی. غلجي قبائیل د اوسنۍ زمانے په شان د بابر په وخت کښے هم د » کټه واز« په لوړو میدانونو کښے آباد وو. بابر او د هغهٔ فوځیانو د غلجیانو د خیمو او کیږدو نه د لوګی تورے لوخړے چه د اسمان په لور ختلے او تورے ګورے وریځے ئے سازے کړے وے. د لرے نه اولیدلے. نو د هغے د پاره ئے ځان ساز کړو. او اویا زره ګډے ئے د هغوی نه اولجه کړے.

د دے نه پس د بابر د فوځ یو حصه د مال غنیمت او لوټ سره د کابل په لور اولیږله. او په خپله بابر د یو زر سپاهیانو سره د قندهار په لور لاړ. د قندهار صوبه د هرات د سلطان حسین یا بقراء په حکومت کښے شامله وه. ولے کوم وخت چه شیبانی خان اوزبک په هرات حمله اوکړه. او تیموری شهزادګانو د هغهٔ د لاسه بدترین شکست اوموند. دغه وخت په قندهار باندے شابیګ ارغون تصرف موندلے وو. د بابر دا خیال وو چه د اوزبکو په مقابله کښے به شابیګ د هغهٔ سره اتحاد ته اماده وی. لیکن حقیقت داسے نهٔ وو. شابیګ د شیبانی خان اقتدار په ځان منلے وو. دغه وجه وه چه هرکله بابر شابیګ ته د خپلو راتلو اطلاع ورکړه. نو هغهٔ ډیر سپور جواب ورکړو. په دے خبره بابر ډیر قهرژن شو. او د شابیګ مقابلے ته په تادئ روان شو. او اګر چه د شابیګ فوځي طاقت د بابر په مقابله کښے ډیر زیات وو. لیکن په جنګ کښے بابر بریالے شو. او د قندهار په مهم کښے د بابر لاس ته بے حسابه مال راغے. د دے په حقله بابر داسے وائی :-

"د په واپسۍ کښې د لښکرګاه شکل بېخي بدل شوے وو. په هر لور د ښو ښو اسونو قطارونه ولاړ وو. په اوښانو او قچرو باندې قيمتي مالونه او اسبابونه بار وو. د بيش قيمته خيمو، شاميانو او فرشونو ډيرې ګېډۍ وو. د شابيګ د خزانو نه د سپينو زرو بے حسابه سکه جات حاصل شوي او بورۍ ترنه ډکې شوے وې. د هر سړي سره د هغهٔ حاصل کړده مالِ غنيمت وو. ډيرے ګډے بزے هم اولجه شوے. ولے د هغوِ په لور چا توجه نهٔ کوله."

د مال غنيمت د حاصولو نه پس په قندهار کښې بابر خپل يو ورور ناصر مرزا مقرر کړو. او د مالِ غنيمت د سمبالولو په غرض په ډيره تادۍ د کابل په لور روان شو. ولے بابر لا کابل ته را رسيدلے نهٔ وو چه په لاره کښې خبر شو چه شيباني خان قندهار محاصره کړے دے. بابر په ډيره تادۍ کابل ته راغے. او د آئنده اقدام په غرض ئے د خپلو اميرانو سره مشوره اوکړه. د څينې اميرانو دا خيال وو چه بدخشان ته تلل پکار دي. ولے بابر د دے سره اتفاق نهٔ لرلو. بابر دا اووئيل :-

"زمونږ دشمنانو (اوزبکيانو) د امير تيمور د اولاد په ټولو ملکونو قبضه کړې ده او دلرے لرے علاقو ترک او مغل قبائيل هم د هغوی ملګري شوي دي. يواځې زهٔ په کابل کښې پاتے يم. ولے زمانهٔ دومره طاقت نشته چه د شيباني خان مقابله اوکړم. او نهٔ د هغهٔ سره د صلح شرائط فيصله کولے شي. په دے صورت کښې به مونږ ته ضرور د يو محفوظ مقام ضرورت وي. او هغه يا بدخشان کيدے شي او يا هندوستان. ځکه چه د دا سے مضبوط دشمن نه کافي لرے او سيدل ضروري دي."

غرض د بابر خپله اراده هندوستان ته د راتلو وه. په دے سلسله کښې په بابر د شيباني خان خوف دومره غالب شو چه هغهٔ سمد ستي په کابل کښې يو رشته دار عبد الرزاق په خپل ځائے حاکم مقرر کړو. او په خپله ئے د خيبر لار را اونيوله. د خيبر قبائيلو د بابر په دے دار خطايۍ د کوچ نه د هغهٔ د تيښتے اندازه اوکړه. او د هغهٔ په لښکر ئے د هر لورې نه حملې شروع کړے. او ډيرے ئے اوتړنول. بابر په دے صداقت د دے خبرے اقرار کوي چه "مونږ ته دا نهٔ وه معلومه چه چرته به ځو. او کوم ځائے به ايسار يږو. بس ځائے په ځائے به ګرځيدو. او په نوی نوی ځايونو کښې به مو قيام کولو. او غوږ به مو د کابل خبر ته نيولے وو."

ولے د خوش قسمتۍ نه د بابر دا مصيبت ډير زر ختم شو. شيباني خان ته په خپل ملک کښې بغاوت اوشو. او هغهٔ د کابل محاصره خوځه چه د قندهار ته د محاصرے په اوچتولو هم مجبور شو. او په ډيره تادۍ خپل وطن ته لاړ. د دے خبر په اوريدو د بابر اميد ونه بيا

تاننا شول - هغه په ډيرے خوشحالئ کابل ته لاړ - د غه وخت د هغهٔ په زړهٔ کښے بيا نوے نوے تلوسے رااولټيدلے - اوځان ته ئے بادشاه ويل شروع کړل - هم په دغه کال (سنه ۱۵۰۸) کښے بابر په مهمندو پښتنو حمله اوکړه - او صفوى ئے اولوټل - اګرچه د دے نه يو کال وړاندے بابر د مهمندو د لوټلو نه په دے وجه انکار کړے ووچه دا خلق زما رعيت دے -

په کال سنه ۱۵۱۱ء کښے بابر ته يو ځل بيا د ثمرقند قبضه په لاس ورغله - په دغه کال د بابر او آلِ تيمور پخوانے دشمن شيبانى خان اوزبک د ايرانى بادشاه شاه اسماعيل صفوى دلاسه اووژلے شو - او بابر ته ثمرقند خالى پاتے شو - چنانچه هغه په ډيرے تادئ د سمرقند په لور لاړ - او په هغه ځائے ئے قبضه اوکړه - په دے قبضه يواځے بابر د خوشحالى نه په جامو کښے نهٔ ځائيدو - بلکه د هغهٔ پخوانے رعيت هم د بابر په راتلو ډير خوشحال وو. ولے په سمرقند باندے قبضه بابر د شاه اسماعيل صفوى په مرسته جارى ساتلے شوه - دغه وجه ده چه بابر د شاه اسماعيل صفوى د لورى نه داسے شرطونه تسليم کړل - چه هغه نهٔ صرف د بابر د خود دارئ منافى وو بلکه د هغهٔ رعيت پرے هم ډير ناراض وو - شاه اسماعيل يو سخت متعصب او د تشيع د عقيدے د اشاعت سرګرم مبلّغ وو - په بل لور بابر او د هغهٔ رعيت سوچه سنى مذهب وو - دغه وجه وه چه د شاه اسماعيل په بالادستئ منلو سره د بابر شهرت او مقبوليت ته په خپل رعيت کښے ډير سخت نقصان او رسيد - او د سمرقند او بخارا خلقو شيبانى خان اوزبک ته د يو شهيد درجه ورکړه - ځکه چه هغه يو راسخ العقيده سنى مسلمان وو - د شاه اسماعيل د لاسه اګرچه اوزبکو شکست موندلے وو - ليکن د صفوى طاقت ختم شوے نهٔ وو - چنانچه اوزبک ډير زر د خپل يو سردار عبيد خان په مشرئ کښے بيا راغونډ شول - او په ثمرقند ئے حمله اوکړه - چونکه د خپلو خلقو د بابر سره مرسته نهٔ وه نو بابر د اوزبکو نه شکست اوموند - بابر د صفوى بادشاه نه د کومک خواست اوکړو - ولے هغهٔ چه کوم فوځ د بابر مدد ته راوليږلو صفوى په سنى مسلمانانو دومره ظلمونه اوکړل چه بابر هم د صفوى په مدد پښيمانه شو - دلے دے ايرانى فوځ هم د اوزبکو نه شکست اوموند - او ټول اووژلے شول - بابر په ډيرے پريشانئ او بے سروسامانئ کښے بيا کابل ته راغے - (۱۵۱۲ء) - دا ځل هغه اتهٔ مياشتے د سمرقند بادشاه وو -

دے شکست د بابر په طبيعت کښے لويه تبديلى پيدا کړه - د هغهٔ په طبيعت کښے غصه

زیاته شوه او د برداشت طاقت ئے کم شو۔ په هغهٔ کښے احساس کمترې پیدا شوه۔ او دمستقبل نه مایوسه شو۔ د شرابو سره هغهٔ د بنګو او افیمو اضافه هم اوکړه۔ دغه وجه ده چه د دے نه پس د ۱۵۱۸ء پورے د هغهٔ د سرګرمیو حال نهٔ معلومیږی۔ ولے په دغه کال هغهٔ ته بیا د اباسیند نه پورے د پنجاب زرخیزه او شاداب میدانونه وریاد شول۔ ولے د پنجاب د زرخیزه میدانونو پورے د رسیدو ټولے لارے د پښتنو په علاقه کښے تیریدلے۔ په دے ټولو لارو که د کرمے او ګومل درے وے او که د خیبر یا تالاش او کاټ کلے درے، پښتانهٔ قبائیل آباد وو۔ او ترڅو چه د دے لارو دا څوکیداران (پښتانهٔ) بابر یا په زور او یا په رضا صلاح خپل ځان ته نهٔ وے ایل کړے۔ تر هغے د پنجاب تر میدانونو رسیدل ګران وو۔ دا خبره هم بابر ته ښه معلومه شوی وه چه د یو بے پرواه سپه سالار او یا د یو شکست خورده فوځ سره د درو دا څوکیداره څه رنګ سلوک کوی۔ او دا حقیقت هم د بابر د خپلے وینا نه څرګند دے چه د اباسیند او د کابل ترمینځه خطه کښے آباد پښتانهٔ په اصلی معنو کښے هیچا هم نهٔ وو ایل کړی۔ د بابر د وینا مطابق سوات، باجوړ، هشنغر او پیښور په یو زمانه کښے د کابل د ریاست حصے وے۔ ولے د بابر په وخت کښے دا ټولے علاقے د پښتنو په خپله قبضه کښے وے۔ او د هند یا د کابل دا اقتدار نه بیخی ازاد وے۔ دغه وجه وه چه بابر هم په حقیقت کښے د ټولو پښتنو ایل کولو خیال پریښے وو۔ البته هغهٔ دا ضروری ګڼله چه د هند په لور خپلے لارے محفوظ کړی۔ په دے غرض هغهٔ د جنوبی پښتنو جاج اخستے وو۔ دا ځل هغه د قطبی پښتنو په لور توجه اوکړه۔ په دے پښتنو کښے د ټولو نه اهمه او طاقتوره قبیله د یوسف زو وه۔ چه د بابر په زمانه کښے او نن ورځ هم په سوات او مردان کښے میشته ده۔ بابر دا ځل د یوسف زو د ایل کولو اراده اوکړه۔

د بابر او یوسف زو ترمینځه ډیر زور تعلق وو۔ دا تعلق د بابر د وینا نه هم څرګندیږی او د یوسف زو خپل روایات هم د دے مرسته کوی۔ د یوسف زو د روایاتو مطابق:۔

هرکله چه بابر کابل فتح کړو نو په ابتداء کښے بابر په یوسف زو ډیر مهربان وو، لیکن دله زاکو چه د یوسفزو قدیمی دشمنان وو۔ د بابر په زړهٔ کښے د یوسفزو په حقله شکوک او شبهات پیدا کړل۔ او هغهٔ د یوسفزو سردار ملک احمد د وژلو اراده اوکړه۔ ولے ملک احمد هم د دے نه خبر شو۔ ملک یو ډیر هوښیار سړے وو۔ کوم وخت چه هغهٔ د بابر په خدمت کښے حاضر شو نو بابر په تخت ناست وو۔ ملک احمد د تعظیم په ځائے کولو نه پس خپله سینه بربنډه کړه۔ بابر ورته پوښتنه اوکړه۔ دا ولے؟ ملک احمد ورته اووئیل چه ما

اوریدلی دی - چه بادشاه زما د وژلو اراده لری. نو ما خپله مینه په دے وجه څرګنده کړه چه هسے نه چه د بادشاه غشے خطا لاړ شی او بل څوک پرِ اولګی - په دے خبره بابر ډیر خوشحال شو او د هغهٔ نه ئے یو څو تپوسونه اوکړل. چه په هغی کښے یو دا وو. چه سکندر څه رنګ سړے وو ؟ - ملک احمد اووئیل چه هغه خلعت بخښونکے وو - بیا بابر اووے چه بابر څه رنګ دے ؟ ملک احمد اووئیل چه هغه ژوندون بخښونکے دے - ځکه چه زما ژوند به ما ته بیرته راکړی - د دے په جواب کښے بابر دا اووئیل چه ضرور دا سے به وی - بیا بادشاه په ملک احمد ډیر مهربان شو او هغه ئے ځان سره خلوت ته بوتلو - او شراب نوشی ئے شروع کړه - بابر په نشه کښے مست شو او ګډا ئے شروع کړه - ملک احمد په فارسئ ښهٔ پوهیدلو - د هغهٔ سازیانو ساز شروع کړو - بابر چه په ګډا ستړے شو نو ملک احمد ته ئے اووے چه راوړه اوس زما انعام - بابر درے ځله د احمد نه انعام اوغوښتو - او هر ځل به ملک احمد هغهٔ ته یو یو اشرفئ ورکوله - د دے نه پس ملک احمد په خوشحالئ او روغ جوړ خپل قوم ته واپس راغے -"

لیکن بیا بابر د یوسف زو په علاقه حمله اوکړه[1]. د هغوی فصلونه ئے تالا کړل - ولے د یوسف زو سنګر (قلا) ئے فتح نهٔ کړے شو - د دے نه پس د قلا د استحکام د جاج اخستلو په غرض بابر د فقیرئ په جامه کښے د خپل کیمپ نه راووتلو - او د " مورے غر " ته راغے - چه د غه غر باندے یوسفزو خپل سنګر جوړ کړے وو - دا د لوئے اختر ورځ وه او د غرهٔ په ویخ کښے د ملک شاه منصور کور وو - او هلته ډیر خلق جمع شوی وو - بابر هم د فقیر په ډول هورے لاړ - هلته هغهٔ په یو خیمه کښے د ملک شاه منصور لور " بی بی مبارکه " اولیدله - بی بی مبارکے چه فقیر اولیدلو نو د وینځ په لاس ئے څه ډوډ ئ او غوښه فقیر ته د خیرات په ډول اولیږله - بابر پوښتنه اوکړه چه دا چا درکړی ده ؟ وینځ واله اووئیل چه " بی بی مبارکے " وینزے دا هم اووئیل هغه مخامخ په خیمه کښے ناسته ده - بابر چه هغه اولیدله نو د هغے ښائست ته حق حیران پاتے شو - د دے نه پس بابر راروان شو او په لار کښے ئے هغه ډوډئ او ښکرے د یوے ګټے لاندے پټ کړو -

---

[1] د اخون درویزه د وینا مطابق د دے حملے وجه دا وه چه ملک احمد په دویم ځل د بابر سلام ته په کابل کښے د حاضریدو نه انکار کړے وو - او په خپل ځائے ئے ملک شاه منصور لیږلے وو - ولے بابر په دے خبره خفه شو - او یوسف زو ته د سزا ورکولو اراده ئے اوکړه -

چه بابر خپل کیمپ ته راغے نو ډیر پریشان وو. ځکه چه قلا ئے هم نۀ وه فتح کړی او د عشق په جال کښے هم گرفتار شوے وو. آخر ملک احمد ته ئے خط اولیکلو. او دخپل ځان د پاره ئے د بی بی مبارکے خواست اوکړو. ولے ملک احمد دے خبرے ته نۀ تیاریدو. هغۀ دا اوویل چه د دے نه وړاندے د بابر په تره اُلغ بیگ او په خان میرزا لاغری یوسف زی جینکۍ وادۀ شوے وے. ولے د هغۀ نتیجه بے د قام د بربادۍ نه بغیر بل څه اونۀ وتله نو هغه بابر ته منکر شو چه د وادۀ جوګه جینۍ څوک زموږ کره شته نه. د دے په جواب کښے بابر هغه ټول واقعات اولیکل. او د ثبوت په غرض ئے د یو کتے د لاندے د هغه دووه اوغو بنے د پټولو واقعه هم اولیکله.

ولے ملک احمد او شاه منصور بیا هم د دے خبرے ته تیار نۀ وو. آخر د ټولے قبیلے جرګه غونډه شوه. په جرګه کښے ټولو مشرانو دا خبره غوره کړه چه هر کله د دے نه وړاندے هم لونه خونډے مغلو ته ورکړے شوی دی نو اوس د بی بی مبارکے په ورکولو کښے انکار او د بادشاه دشمنی اخستل به د ټولے قبیلے د پاره د نقصان باعث اوګرځی. په دے خبره ملک احمد اوویل. چه که ستاسو په خیال کښے د قبیلے بهتری په دے کښے وی نو دا به دِ وی.

غرض بابر ته چه د رضامندۍ خبر اورسیده نو هغه ډیر خوشحال شو. یو لوئے جشن ئے اوکړو. او د ناوی د پاره ئے قیمتی تحفے اولیږلے. چه په هغو کښے یو توره هم وه. په بل لور ملک احمد او ملک شاه منصور د بی بی مبارکے سره د "تالاش" نه هم وړاندے راغلل. دلته شاهی محافظان د استقبال په غرض موجود وو. بی بی مبارکه د خپلے دائی "روفۀ" او د وینزو نوکرانو په ملګرتیا کښے شاهی کیمپ ته لاړه. د کیمپ په مینځ کښے یو لویه خیمه وه. ناوی هغے ته اورسولے شوه. په دغه شپه او بله ورځ د بابر د امیرانو بیګمات د هغے ملاقات ته راغلے. ولے بی بی مبارکے د هغوی په لور څه توجه اونۀ کړه. او هغوی دا اوویل چه جینۍ بے شکه چه ډیره ښکلی ده. ولے زموږ سره ئے په ښۀ رنګ سلوک اونۀ کړو. کیدے به شی. په دے کښے به څه راز ضرور وی.

بی بی مبارکے خپلو وینځو نوکرانو ته وئیلی وو چه د بادشاه د راتلو خیال دِ ساتی او نوکرانو هغے ته اطلاع ورکړه چه بادشاه د جمیع مانځه ته روان دے. د مانځه نه پس ئے بیا اطلاع ورکړه چه بادشاه ستا خیمے ته راروان دے. بی بی مبارکه سمدستی د تخت نه ښکته شوه او لاس په نامه په قالین اودریده. چه بادشاه خیمے ته راننه شو نو هغے په ډیر ادب د بادشاه تعظیم اوکړو. بادشاه د هغے ښاشت ته حیران شو. بیا په تخت کښیناستو او وے وئیل زما

پیښتنې میرمنې راشه زما خوا کښې کښینه - بي بي مبارکې تعظیم اوکړو. ولې وړاندې نهٔ شوه بلې څل بیا بادشاه هغې ته د کښیناستلو اووې. دا څل بي بي مبارکې دمخ نه نقاب لرې کړو او وې وئیل چې که اجازت وی نو څه عرض کول غواړم - بادشاه اجازت ورکړو - بي بي مبارکې اووئیل چه بادشاه دِ دا فرض کړی چه ټول یوسفزی قام زما په لمن کښې راغونډ شوی دے. زما په خاطرِ دِ بادشاه د هغوی قصور معاف کړی. بابر اووئیل! چه ما د یوسف زو ټول قصورونه ستا په خاطر معاف کړل. او هغوی ے ستا په جولۍ کښې واچول. ددے نه پس زما په زړهٔ کښې د یوسف زو د پاره هیڅ خیرے نشته. هغې بیا تعظیم اوکړو. او بادشاه هغه د خپل ځان سره په تخت کښېنوله. چه د مازیګرد مانځه وخت شو نو بادشاه د مانځه اراده اوکړه - بي بي مبارکه سمدستي د تخت نه کوزه شوه او د باچا پیزار ئے د هغهٔ د وړاندے راوړو -بادشاه پیزار رواچولو.نو ډیر خوشحاله شو او وے وئیل چه دا چلونه به ضرورتا ته ملک احمد ښئیلی وی-

د بابر او بي بي مبارکے د عشق و محبت داستان د حقیقت نه خالی نهٔ معلومیږی- بي بي مبارکه د بابر په حرم کښې داخله وه- او د هغهٔ په مشورو کښې ئے څه حصه هم لرله- دا درست ده چه بابر په خپل تحریر کښې د خپلو بیګما نو په باب کښې د عزت واحترام نه زیاتی د هغوی سره د خپل عشق و محبت واردات نهٔ دی څرګند کړی. او اګر چه د بي بي مبارکے په حقله د بابر د بیان نه دا معلومیږی چه دا رشته، په سیاسی اغراضو شوی وه- ولے د دے باوجود بابر چه د کوم قسم طبیعت خاوند وو- د هغې په رڼا کښې دا وئیل حقیقت ته نزدے معلومیږی چه ددے رشتے وجه دِ سیاسي اغراضو نه علاوه عشق و محبت هم وه- د بابر وړومبۍ ښځه شهزادګۍ عائشه سلطان وه -دغه وخت بابر د اوولسو کالو یو ځلے وو- ولے د بابر دا ازدواجي زندګی کامیابه نهٔ وه - د دے یو وجه خو د بابر په طبیعت کښې د حد نه زیاتد د شرم ماده وه او بله دا چه د شهزادګۍ عائشه سلطان مینه هم د بابر سره نهٔ وه- دغه وجه وه چه بابر به په ورځو ورځو خپل حرم ته نهٔ تلو. په دے باب کښې په خپله وائی، زهٔ به حرم ته کله کله په لسمه اوکله کله په شلمه ورځ تلم - بلکه دا بندیز د ومره زیات شو چه زهٔ به خپلے مور میاشت شلوېښت ورځې پس په دیکو دیکو حرم ته لیږلم." د هغهٔ د خپلے ښځے نه د بے توجهۍ یوه وجه دا هم وه چه د ټولو مغلو او ترکو په شان په دغه زمانه کښې د بابرؔ هم د یو هلک سره مینه پیدا شوی وه- د دے هلک نامه"بابری"وه- ورو ورو دا مینه د لیونتوب حد ته اورسیدله- ټوله ورځ او شپه به د هغهٔ په یاد کښې سرګردانه ګرځیدو. بابر وائی،" ددے نه وړاندے هیڅ سره زما مینه داسے نهٔ وه پیدا شوی. د زمانے ناسازو ما ته د عشق و محبت د افسانو

اوریدلو موقع هم نهٔ وه راکړی ـ په هغه ورځو کښے چه ما کوم شعرونه لیکلی دی په هغو کښے د یو شعر نه دا معلومیږی چه زهٔ څومره خوار و ذلیل عاشق وم ـ ،، بابری ،، چه به زما کمرے ته راغلو نو ما به د شرم نه د هغهٔ سره سترګے نهٔ شوے مخامخ کولے،، په هغه شعرونو کښے یو شعر دا دے ـــ

چه محبوب مے په نظر شی زهٔ د شرم شم خولے
خلق ګوری زما لور ته زهٔ هورے شم نهٔ دلے[1]

،، د لیونتوب د جذباتو په دے سیلاب کښے به زهٔ سرتورسر پښے ابله پښے په لارو کوڅو او بازارونو کښے ګرځیدلم ـ کله به په میرو او غرونو سر شوم ـ نهٔ مے د خپل عزت څهٔ پرواه وه ـ او نهٔ راسره د دوستانو ، خپلو خپلوانو او د ملاقاتیانو د عزت څهٔ خیال وو،، رفته رفته د بابر دا د لیونتوب جذبات ختم شول ـ ولے د سنځو په باب کښے ئے د هغهٔ په طبیعت کښے بے پروائی او بے توجهی پیدا کړه ـ

به هرحال د کال سنه ۱۵۱۸-۱۹ء په ژمی کښے بابر د یوسف زو په مهم روان شو ـ بابر اول د باجوړ نیت اوکړو ـ په باجوړ کښے د جباری قبیلے یو رئیس سلطان حیدرعلی د باجوړ حکمران وو ـ د حملے نه اول بابر یو دله زاک پښتون د سفیر په څول سلطان حیدرعلی ته اولیږلو او د هغهٔ نه ئے د قلا د حواله کولو مطالبه اوکړه ـ ولے سلطان حیدر علی د جنګ نه بغیر د قلا حواله کولو ته آماده نهٔ شو ـ چنانچه بابر د باجوړ په قلا حمله اوکړه ـ دغه وخت د بابر سره آتشینه وسله هم وه ـ او د قلا د نیولو نور آلات ئے هم لرل ـ غرض د بابر مسلح او منظم فوځ د باجوړ په قلا حمله اوکړه ـ د قلا د ننه محصور باجوړیانو د دوئ سره ښهٔ مقابله اوکړه لیکن د بابر د آتشینے وسلے په مخکښے د دوی جرأت بے کاره ثابت شو ـ قریبًا درے زره ـ باجوړیان اووژلے شول ـ په دے باب کښے بابر وائی ،، د باجوړ خلق باغی بے دینه وو ـ د اسلام د نوم نه هم ناخبره وو ـ ځکه مونږ هغوی قتل کړل ـ او آل و عیال موئے قیدیان کړل ـ بیا زهٔ د قلا د معائنے په غرض قلا ته ورننه شوم ـ په هرلوری مړی پراتهٔ وو ـ زهٔ د سلطان باجوړ په محل کښے دیره شوم ـ دا ولایت ما خواجه کلان ته ورکړو ،،

حقیقت دا دے چه د باجوړ قلا نه خو مضبوطه وه او نهٔ دیرلویه ولے د باجوړ خلقو نهٔ آتشینے وسلے لیدلے وے او نهٔ ورسره وے ـ په دے وجه هغوی بے حساب اووژلے شول ـ

---

[1] اصل شعر ے   شوم شرمنده هرګه یار خود را درنظر بینم
رفیقان سوئے من بینند و من سوئے دګر بینم

د «کرشي» په مقام چه شو - ایرانیانو کوم قتل عام کړے وو - په هغې د بابرزړهٔ ته ډیر درد رسیدلے وو - ولے افسوس دے چه په باجوړ کښې د دے خلقو بے دریغه قتل بابرته هیڅ صدمه اونهٔ رسیدله - د باجوړ د تسخیر نه پس بابر د یوسف زو په تکل روان شو - د دے په حقله بابر داسے وائي :-

"د جمع په ورځ په یوسف زو پښتنو د حملے په غرض د سواد (سوات) په لار کوچ اوشو - (او غالباً په هغه ځائے کښې ئے کیمپ اولګولو - کوم ځائے چه د باجوړ او جندول سیندونه یو ځائے کیږي -) دلته کښې ملک شاه منصور چه د ملک سلیمان شاه ځوئے او په دولت خواهانو کښې شامل وو - حاضر شو - او ډیره خوندوره او د نشے نه ډکه مزیداره شیریني ئے د تحفے په ډول پیش کړه - د دے نه یو حصه ما اوخوړله - یو حصه مے طغائي ته او دوئمه حصه مے عبدالله کتاب دار ته ورکړه - په دے کښې داسے نشائي ځیزونه وو چه د ماښام نه پس چه امیران د مشورے په غرض جمع شول - نو زهٔ د خیمے نه بهر نهٔ شوم تلے - یو عجیبه نشه وه - څه زمانه پس که ما درے واړه حصے خوړلے وے نو بیا به هم دومره نهٔ ووم نشه شوے - موږ لا په دے علاقه کښې وو - چه ترکیټیټو ګیټیټو واوړه اووریدله داسے به شاید چه کله ناکله کیدل - څکه چه مقامي خلق په دے ډیر حیران وو - د سلطان اویس سوادي (سواتي) په مشوره د دے علاقے د خلقو نه څلور زره خرواره وریژے د لښکر د پاره اوغوښتلے شوے - او د دے د وصولولو د پاره مے سلطان اویس اولیږلو - د دے ځنګلي او غرځنو خلقو دومره محصول چرته نهٔ وو ورکړے - د یوسف زی قوم د بهترئ په خاطر ما د خپل خیرخواه ملک شاه منصور لور غوښتلې وه - هغه د خپل قام د لوري نه د وکیل په ډول راغلے وو - موږ لا په دے پړاؤ کښې وو چه د دے جینۍ د یوسف زو د خراج سره د راتلو خبر رااورسید و - ماښام موږ د شراب نوشئ جلسه اوکړه - چه په هغې کښې مو سلطان اویس هم شامل کړو او د هغهٔ سره مو پټه جرګه اوکړه - د دے ځائے نه موږ کوچ اوکړو - او چه وړاندے لاړو نو د شاه منصور کشر ورور ملک طاؤس خان خپله وریره مخکښې پړاو ته رااورسوله - دا میرمن د باجوړ قلا ته اولیږلے شوه[1] -

« د امیرانو او د لهٔ زاکو سردارانو سره موږ مصلحت اوکړو - صلاح په دے راغله چه

---

[1] بي بي مبارکه د اکبر تر زمانے ژوندئ وه - او د دے څه اولاد نهٔ وو شوے - په مغل بیګمانو کښې دا میرمن د «افغاني بیګم» په نامه مشهوره وه -

کال په ختمیدو دے. او کاشتکارانو خپل فصلونه اوچت کړی دی. په دے ورځو کښے دسواد (سوات) په کڅئ کښے که وردننه شو نو لښکر به دغلے د نیشتوالی نه په کړاوړ شی. ښه به دا وی چه د سوات په سیند پورے شو. او دره مورے په میدانونو کښے په ابادو یوسف زوچپاؤ اوکړو. ولے دا حمله دِ په یخنئ کښے نهٔ وی. بلکه محکښے کال به د فصل د تیاریدو په وخت کښے ددوی خبر واخلو "

لکه چه مو وټیلی دی د بابر ددے یادداشتونو نه د یوسف زو او د بابر د تعلقاتو د روایتی افسانے ترمینځه څه ناڅه تعلق څرګندیږی . د یوسف زو د وکیل (ملک شاه منصور) په مخکښے د بابر په نشه کښے بیخوده کیدل. د بی بی مبارکے د خپلے قبیلے دخراج سره راتلل. بیا په دے قبیلے باندے دحملے التوا، او ددے نه پس په یوسف زو باندے حمله نهٔ کول داسے خبرے دی چه د بابر او ددے قبیلے ترمینځه دمفاهمت غمازی کوی. او دا ظاهره ده چه دمفاهمت په دے کوشش کښے به دبی بی مبارکے لویه برخه وه. د یوسف زو په دے مهم کښے لکه څه رنګ چه دواقعاتو نه ظاهره ده دله زاک پښتانهٔ به د یوسف زو او مهمنزو قبائیلو نه په قبیلوی جنګونو کښے تنګ وو. او د بابر په دے تاخت کښے به دهغوی د انتقام جذبه هم سړیدله. دغه وجه وه چه که د یوسف زو د تاخت معامله په ملله کښے پریوته نو دله زاکو بابرته په مهمنزو باندے دحملے مشوره ورکړه.

چنانچه بابر دخپلو فوځونو سره د دریائے امبهار په غاړه میدانی علاقے ته راښکته شو. او د هشتنغر د مهمنزو سره ئے سوک څپیړه اوکړه. د هشتنغر په باب کښے دا متل مشهور دے چه که هشتنغر نه خورے نو به پرمهٔ وایه. دا متل یه هغه وخت هم شاید چه په هشتنغر صادق کیدے شو. لیکن د بابر په زمانه کښے په هشتنغر کښے نهٔ خو دا فارئی کنی وو. نه تناکو اونهٔ داسے نهرونه. نو د بابر چه د هشتنغر دلوټلونه کومه توقع وه هغه پوره نهٔ شوه. د هشتنغر نه بابر د تخت بائی په خوا کښے تیرشو. او کاټلنګ ته راغے. او ددے ځائے نه بیا شهباز ګړے ته.

په دغه ورځو کښے د شهباز ګړے دا موجوده کلے آباد نهٔ وو. ځکه بابر ددے کلی نوم نهٔ اخلی. بلکه ددے کلی په خوا کښے چه کوم خوړ (مقام) بهیږی . د هغے خوړ او ددے خوړ په خوا کښے د یو غر ذکر کوی چه منظرئے ډیر پرفضا او خونه ناک وو. بابر هم ددے غر سرته اوختلو. معجون ئے اوخوړل . او ددے ځائے د دلفریب منظر نه ئے لطف حاصل کړو. د بابر د وینا مطابق ددے غر په سر د شهباز نومے یو ملحد قبر

وؤ۔ بابر ددے قبر د ورانولو حکم اوکړو۔ ځکه چه دهغهٔ په خیال کښې په داسې پړ فضا مقام باندے د یو ملحد قبر څه جواز او موزونیت نهٔ لرلو۔

---

لهٔ شهباز قلندر:۔ د اخون درویزه د وینا مطابق په کومو ورځو کښې چه د یوسف زو د سیمے د سوات د بادشاهانو په قبضه کښې وه په دغه زمانه کښې یو درے تنه سیدان چه په خپلو کښې ورونړه او ډیر نیک او خدا پرست بندیان وو۔ دے علاقے ته راغلی وو۔ په دے ورو نړو کښې د یو نامه سید احمد محمود وه۔ دا سړے د کلپانۍ په څنواوشا کښې په لنګر نوے کلی کښې استوګن شوے او د خپلے پارسائۍ او نیک عملی په وجه ئے په خلقو کښې ډیر شهرت بیا موندلے وو۔ چه دے وفات شو نو خپلو مریدانو د "کوه لنګر" د پاسه ښخ کړو۔ وروستو څه زمانه پس دے علاقے ته د خراسان د لورې نه شهباز نوے یو سړے راغلو او د دله زاکو پښتنو د هنګرکزی ځانګے سره میشته شو۔ دا دله زاک ډیر جاهلان او د اسلامی تعلیماتو نه بلجی نابلده وو۔ دے شهباز چه ځان له به ئے قلندر وئیل، او یو ګمراه، ملحد او چالاک انسان وو۔ دا خلق خپل مریدان کړل۔ او د دهٔ په وجه ټول ګمراهان شول۔ دے ملحد شهباز د سید احمد محمود قبر اوسپړلو۔ د هغهٔ هډوکی ئے د قبر نه راوبستل۔ او قبر ئے خالی کړو۔ او خپلو مریدانو ته ئے هدایت اوکړو۔ چه زما د مرګ نه پس ما هم په دے قبر کښې ښخ کړئ۔ د دے نه څه موده پس شهباز ملحد خپل مریدان جمع کړل۔ او د تناوُلو په یو کلی ئے حمله اوکړه۔ په جنګ کښې دا ملحد اووژلے شو۔ او تناوولو ترینه سر پریکړو۔ او د ځان سره ئے یوړهٔ۔ ولے د هغهٔ مریدانو د هغهٔ بے سره تنه راوړه۔ او د سید احمد محمود په هغه خالی قبر کښې ئے ښخ کړهٔ۔ دغه وجه ده چه دا ځائے د شهباز قلندر په مقبره مشهور شو۔ د اکبر په زمانه کښې چه دا علاقه د هغهٔ امیرانو اونیوله او په لنګر کلی کښې ئے قلا جوړه کړه نو هغه کلے په لنګرکوټ مشهور شو۔ چونکه مغل امیران ددے ملحد د حقیقت نه خبر نهٔ وو نو د دهٔ مقبرے ته به ئے شهباز ګړه وئیل۔ او په اولس کښې هم دا نوم مشهور شو۔ درویزه د مغل حاکمانو نه دا توقع لرله چه هغوی به د دے قبر نه ددے بے دین هډوکی راوکاږی او د سید احمد محمود بدل به واخلی۔ (تذکره الابرار ص۱۵۶ تا ۱۶۱)

داسې معلومیږی چه د بابر د راتلو په وخت کښې د شهباز د الحاد خبرے په خلقو کښې مشهورے وے۔ او دا قیاس کیدے شی چه د سید احمد محمود په قبر کښې به د هغهٔ د ښخولو واقعه هم د بابر د راتلو نه څه لږه موده وړاندے شوی وی۔ او د دے یاد به د خلقو په ذهن کښې لا تازه وو۔ ځکه بابر هغه د ملحد په لفظ یاد کړے دے لیکن داسې ښکاریږی چه د بابر د تلو نه پس د شهباز مریدانو د هغه قبر بیا جوړ کړے دے. او د زمانے په تیریدو سره د هغهٔ د الحاد خبرے هم د خلقو د ذهنونو نه وتلی دی۔ امکان لری چه د اکبر په زمانه کښې به هغهٔ د یو بزرګ او ولی حیثیت موندلے وی۔ او د دهٔ مقبره به د عوامو زیارت ګاه (نورپه ص۱۲۴)

د شهباز ګړهي نه پس بابر د صوابۍ په لور لاړ. هلته ئې د ګينډيو ښکار اوکړو. او بيا د هنډ په ګودر پورې شو. او د بهيرې په لور لاړ. ولې د جهلم پورې به رسيدلې وو چې بيرته راستون شو. او د اټک نه يو څو ميله ښکته په کشتيو کښې په اباسيند راپورې شو. دا د پسرلي موسم وو. په هر لور رنګارنګ ګلونه غوړيدلي وو. ټول ملک ګل ګلزار او سبزه زار وو. بابر ښۀ په طبع پيښور ته راورسيد. او دلته څو ورځې ايسار شو. په دې موقع بابر د ګورګټړۍ سيل هم اوکړو. ولې د دې ځائې د ليدلو چې څومره تلوسه بابر لرله. هغه هومره ئې دا ځائې خوښ نۀ شو. د ګورګټړۍ په باب کښې بابر داسې وائي:-

„بله ورځ په باګرام (پيښور) کښې موږ. د ګورګټړۍ د سيل په غرض روان شو. په دنيا کښې به بل داسې ځائې چرته نۀ وي چې هلته به د راهبانو د استوګنې د پاره داسې تنګې او بندې کوټړۍ جوړې شوې وي څه رنګ چې موږ په دې ځائې کښې اوليدلې. چې په دروازه بنده ورننوځې او دوه درې پوړۍ ښکته لاړشې نو بنده د پاره بې د دې نه بله لار نۀ وي چې اوږد اوږد پرمخ څملي. او د ګيډې په سکيندو سکيندو مخ په ښکته او ښوئيږي. د تيرې دا حال دې چې ترڅو د رڼا څه بندوبست نۀ وي نو د ننه تلل ناممکن دي. په دې ځائې کښې ځائې په ځائې د سرونو او ږيرو ويښتۀ بې حسابه پراتۀ دي. د دې ګورګټړۍ په ټولو اطرافو کښې داسې وړې وړې کوټړۍ جوړې شوې دي څه رنګ چې په مدرسو کښې د طالبانو د پاره يا په راهب خانو کښې د سادهوګانو د پاره جوړې وي؟

لکه چې د بابر د واقعاتو نه دا خبره په خپله څرګنده ده. د له زاک پښتانۀ د بابر په مهماتو کښې د پښتنو برخلاف د هغۀ ملګري وو. د غه وجه ده چې هر کله بابر د باګرام (پيښور) نه د کابل په لور روانيدلو نو هغۀ د دله زاکو مشرانو ته سل سل مثقاله سپين زر، درې درې غواګانې او يوه يوه مينبه د تحفې په ډول ورکړې. او د پښتنو د نورو قبيلو مشرانو ته ئې هم په خپل خپل مناسب انعامونه ورکړل. او د کابل په لور روان شو. بابر چې په خيبر وردننه شو نو څنې اميرانو هغۀ ته د افريدو د لوټلو مشوره ورکړه. ولې بابر په دې موقع دا مشوره اونۀ منله. او وې وئيل چې زما سره د يوسف زو فکر دې. بابر چې على مسجد

---

(پاتې حاشيه صـ۴۱۳) ګرځيدلي وي. دا هم ظاهره ده چې د شهباز د قبر سره چې بابر کوم سلوک کړې وو اخون درويزه د هغې نه خبر نۀ دې. او نۀ مغل اميرانو ته د دې څه علم وو. د مقام خور سره متصل د قطب په لور د شهباز ګړې سره چې کوم غر دې د شهباز قلندر قبر به شايد چې په دې غر جوړ وو.

ته اورسید - نو دلته معروف دله زاک یعقوب خیل د دغهٔ په خدمت کښې وریږے اوګړان
د میلمستیا په ډول پیش کړل - د خیبر په قبائیلو کښې دا رواج ترنن ورځ موجود دے چه
دوی هر عزتمند میلمه ته چه خیبر ته راشي د میلمستیا په دود ګډان پیش کوي - ددے نه دا
هم معلومیږي چه د نورو پښتنو قبائیلو په نسبت د دله زاکو او بابر تعلقات خوشګوار وو -او
دا ورنه هم ښکاره ده چه د خیبر په استوګنو قبائیلو کښې دله زاک هم شامل وو - او مقامي
روایات هم ددے تائید کوي - بابر په علي مسجد کښې څو ورځے ایسار شو او بیا کابل ته اورسید
بابر ته د خیبر راغلي وټیلو په غرض ملک شاه منصور او د یوسف زو یو څو سپین ګیري کابل
ته راغلي وو - بابر دوي ته هم خلعتونه ورکړل - او په عزت ئے د کابل نه رخصت کړل - په
دے ډول د بابر دا دویم مهم پاے ته اورسید -

د کال ۱۵۱۹ء د مئ په موسم کښې بابر په دریم ځل د پښتنو په مهم د کابل نه را روان
شو - او په خیبر راواوښتلو - دا ځل دغه بیا د یوسف زو په اراده راغلے وو - د یوسف زو
سره اګر که د بابر خپلوي شوي وه ولے دا ښے معلومیږي چه دے طاقتورے قبیلے د بابر پړي ته
غاړه نهٔ کیښودله - بابر چه پیښور ته راغے نو د دله زاکو په مشوره ئے د هشتنغر د لوټلو
فیصله اوکړه - ولے د هشتنغر د دولت او د غلو د پریوانئ چه څومره صفت بابر ته شوے وو
د هغې په څلورمه حصه هم د بابر په لاس رانغلو - دا ځل هم بابر د یوسف زو سره لاس
وا نهٔ چړلو - او یو نوي اراده ئے اوکړه - بابر د افریدو او شنوارو د لوټلو په غرض روان
شو - افریدي او شنواري چه هرحمله آور به د دوي نه تر پوزے راغلے وو - په اول ځل د بابر
د لاسه ډیر ګیر وو شول - په دے مهم کښې بابر د شنوارو یوه ټانګه خضر خیل اولوټله او
هم په دے مهم کښې بابر د وزیرو نه درے سوه ګډے د خراج په ډول واخستلے - ولے دا ښے
معلومیږي چه شنوارو، افریدو او وزیرو بابرخپل ارمان پوره کولو نه پرے نښود - ځکه چه د
ښګښو د مهم په شان دا ځل بیا بابر ته د بدخشان په حقله بد بد خبرونه رااورسیدل -او هغه
د پښتنو د غوړونو تاؤولو نه بغیر کابل ته په تلو مجبور شو - په دے کښې شک نشته د بابر دا
مهم اګر چه د پښتنو په ایل کولو کښې خو کامیاب نهٔ شو لیکن بیا هم د بابر د پرله پسے تاختونو
دومره اثر اوشو - چه وزیر، افریدي او د پیښور قبائیل د بابر د تاختونو نه په ویره کښې
پرے وتل -

په کال ۱۵۲۰ء کښې بابر بیا په اباسینه پورے وتو - او د سیالکوټ او سید پور ښارونه
ئے اونیول - د دے مهم په دوران کښې بابر ته په کابل باندے د قندهار والي شابیګ د

علے اطلاع راواورسیده- او هغه په چیرے تندئ کابل ته واپس شو- د دے مهم د لار کودرا و نورو واقعاتو تفصیل نهٔ شی موندلے- بابر چه کابل ته اورسیده نو د قندهار د فتح کولو اراده ئے اوکړه ځکه چه د قندهار د فتح نه بغیر هغهٔ خپل ورکوټے ریاست غیر محفوظ ګڼلو- او په هند باندے هغه په تسلیٔ سره تاختونه نهٔ شوکولے- بابر د مناسب تیاری نه پس په قندهار حمله اوکړه- او په کال ۱۵۲۳ کښے ئے فتح کړو- شا بیګ (ارغون) د قندهار نه سنده ته اوتښتیده- او هلته کښے په یو علاقه خپل ریاست قائم کړو- ولے سمدستی مړ شو- او بابر دیو خطرناک دشمن نه بے غمه شو-

د دے نه پس زر تر زره بابر ته د هندوستان د فتح کولو موقع هم په لاس ورغله- د بابر د هندوستان د فتح د دے آخری مهماتو تفصیل د ابراهیم لودی په سلسله کښے شوے دے- غرض بابر په ۱۵۲۶ کښے په ابراهیم لودی بریالے شو او د هندوستان سلطنت ئے لاس ته راغے-

د پانی پت دا جنګ د سیاسی نتیجے په لحاظ یو فیصله کن جنګ وو- په دے جنګ کښے د پښتنو مرکزی طاقت په هند کښے سقوط اوموند- او د دوی طاقت تار په تار شو- د هندوانو په زړونو کښے هم ویره پرے وتله- د رانا سانګا امیدونه مړاوی شول- د دے جنګ په نتیجه کښے په هند کښے د مغلو سلطنت قائم شو- د پنجاب او دواب د علاقے د حکومت نه علاوه د بابر لاس ته بے اندازے مال و دولت راغے- ولے بابر په ډیرے فیاضیٔ او دریا دلیٔ د خپلو امیرانو او فوځیانو نماځنه اوکړه- انعامونه اکرامونه ئے ورکړل- او د کابل پورے هغهٔ خپل متعلقین د دے بخښش نه محروم نهٔ کړل- د قندز او غزنی پورے هغهٔ خپلو خلقو ته تحفے اولیږلے- او د دے فیضی نه د بدخشان استوګنو هم برخه اوموندله- د دے سره بابر دا اعلان هم اوکړو چه دا میرتیمور یا د چنګیز خان د نسل هر سړی ته دا دعوت دے چه هغه دِ زموږ دربار ته راشی- او د خپل خدمت او همت مطابق دِ برخه حاصله کړی- د هغهٔ داوینا په دے خبره دلالت کوی چه د ډیرو کالونو د اواره ګردیٔ نه پس هغهٔ ته داستوګنے د پاره یو عوریزه او فراخه زمکه په لاس ورغلی وه- او هغهٔ دا فیصله کړی وه چه د خپل نسل ټول افراد هم دلته راغونډ کړی- او دغه زمکه د هغوی وطن اوګرځوی-

د پانی پت فتح د بابر د نورو فتوحاتو د زنځیر یوه کړیٔ ده- د پښتنو طاقت اګر چه

---

له دابراهیم لودی برخلاف رانا سانګا هم بابر ته په هندوستان باندے د حملے دعوت ورکړے وو-

زیاتې شوې وو۔ ولې ختم شوې نهٔ وو۔ دغه وخت د راجپوتو په خله کښې هم دهندوستان شهنشاهئ ته اوبهٔ راغلې وې۔ بابر د دې خطراتو نه ښهٔ واقف وو۔ هغه واتې د کوم وخت چه موږ په اګره کښې داخل شو نو د دې علاقې د خلقو او زموږ ترمینځه سخت مخالفت او نفرت وو۔ کاشتکاران او سپاهیان ټول به زما د سړو نه لرې لرې تښتیدل۔ د دهلی او اګرې د ښارونو نه علاوه نورو ټولو قلا بند ښارونو خپلې مورچې مضبوطې کړې وې۔ او هغه ئې نهٔ وو حواله کړی۔ نه ئې اطاعت منلې وو۔ په پښتنو امیرانو کښې قاسم خان په سنبل کښې، نظام خان په بیانه کښې او حسن خان په میوات کښې فتنه پورته کړی وه۔ دغه شان تاتار خان په ګوالیار کښې، حسین خان په راپړی، قطب خان په اتاوه کښې او عالم خان په کالپي کښې مونډک شوی وو۔ په قنوج او د سیند نه پورې په ټوله علاقه هم د پښتنو قبضه وه۔ په دوی کښې نصیر خان او معروف خان او داسې ډیر نور امیران د ابراهیم لودی د وخت نه باغیان شوی وو۔ په دې ډول د مشرق په لور د ګنګا په غاړه د پښتنو امیرانو او د قبلې په لور د راجپوت سردارانو د مضبوطې ډلې ترمینځه بابر ګیر وو۔ دغه وجه وه چه هر کله هندی امیران خواه که پښتانهٔ وو او که راجپوت په دې خبره پوه شول چه بابر په هند کښې د استوګنې اراده لری۔ او دا ملک خپل ملک ګرځوی۔ نو دوی په ملک کښې داسې اړې کړې جوړې کړو چه د مغلو نه ئې دوه درې خطا کړل۔ او د مغلو اکثر سرداران ئې د کابل تلو ته لیواله کړل۔ ولې په دې موقع بابر د ډیر غور او تدبر نه کار واخست۔ خپل امیران ئې راغونډ کړل۔ د هغوی په مخکښې ئې یو ولوله انګیز او مؤثر تقریر اوکړو۔ او هغوی د هند د فتح د تکمیل په مقصد متفق شول۔ سره د دې د بابر یو لوئې امیر خواجه کلان بیا هم د هند استوګنې ته تیار نهٔ شو۔ او بابر هغه کابل ته رخصت کړو۔ دا امیر (خواجه کلان) د هند جنګونو او مشکلاتو دومره ویرولې وو چه د تلو په وخت کښې ئې د دهلی په قلا دا شعر اولیکلو ؎

اګر به خیر و سلامت عبور سند کنم
سیاه روئے شوم ګر هوائے هند کنم

بابر اول پښتانهٔ امیران څه په روغه جوړه او څه په جنګ جګړه د خپل ځان ته مائل کړل۔ ولې دغه وخت هغه د راجپوتو د بغاوت نه خبر شو۔ د دهلی او اګرې د فتح په وجه چه د رانا سانګا منصوبې شنډې شوې نو هغهٔ ټول راجپوت راجګان د خپلې جنډې لاندې راغونډ کړل۔ او د هندوستان نه ئې د مغلو د ایستلو تابیا اوکړه۔ په دې سلسله کښې د راجپوتو سره څنې پښتانهٔ امیران هم ملګری وو۔ بابر د رانا سانګا مقابلې ته روان شو۔

د مغلو او راجپوتو دا جنګ د "سیکری" په مقام چه د اګرې نه د (۲۶) میلو په فاصله واقع دے اوشو. په دے جنګ کښې هم بابر په خپل تدبر او جنګی مهارت په راجپوتو کامیاب شو. راجپوت اوتښتیدل. د هغوی اتحاد ختم شو. او د بابر له مخې یو خطرناک دښمن لرې شو.

په سنه ۱۵۲۸ء کښې بابر چندیری هم فتح کړه او د مالوې په مهم کښې ګلیا وو. چه د قنوج د پښتنو د بغاوت نه خبر شو. او سمدستی قنوج ته راغے. باغیان ئے اوزغلول او بیائے رنتهمبور هم فتح کړو. په دے ورځو کښې د ابراهیم یو ورور محمود خان لودی په بهار قبضه اوکړه. د محمود په مرسته بنګالیان هم اودریدل. ولے بابر دوی ته هم شکست ورکړو. دغه ورځو کښې د بابر صحت په پرے وتو وو. په دے دوران کښې هغه د خپل نوی سلطنت په انتظام کښې مصروف وو. د دے نه پس هغۀ څه نوی فوځ کشی او نۀ کړه. د یو څو میاشتو ناجوړتیا نه پس بابر په کال سنه ۱۵۳۰ء کښې وفات شو. د وفات په وخت کښې د بابر عمر (۴۸) کاله وو.

په ابتداء کښې بابر د اګرے په یو باغ کښې دفن کړے شو. او نهه کاله هم په دے باغ کښې وو. لیکن دا سے معلومیږی چه بابر خواجه کلان ۰ او یا نورو امیرانو ته د خپل مدفن په باره کښې ضروری هدایتونه ورکړی وو. د دغه سبب وو چه هرکله همایون او مغل امیران د هندوستان نه په وتلو مجبور کړے شول. دغه وخت د بابر پښتنې میرمن "بی بی مبارکے" د خپل خاوند بابر د (لاش) په حفاظت سره د هند نه کابل ته اورسولو. او هلته د بابر په غوریز تفریح ګاه کښې ښخ کړے شو. د بابر مدفن د موجوده ښهر کابل نه دا ونو یو بن او د بالا حصار غرۀ د نظر نه پناه کړے دے. دغه ځائے د رحلت ګاه بابر په نامه مشهور دے.

بابر د ډیرے مضبوطے ارادے خاوند وو. هر مصیبت به ئے په خندا تیرولو. په مینځنۍ ایشیا او هندوستان کښې چه هغۀ کومے جنګی کارنامے سرته رسولی دی د هغې په بنا هغه د دنیا په لویو لویو فاتحانو کښې د ځائے موندلو حق لری. په هند کښې د مغل سلطنت بانی هم هغه وو. ولے د هغۀ سلطنت لا مضبوط شوے نۀ وو چه وفات شو. بابر د فنون جنګ نه خو ښۀ خبردار وو. ولے په هغۀ کښې دا صلاحیت نۀ وو چه په خپلو مفتوحه علاقو کښې خپل حکومت مضبوط کړی. د زوړ دستور مطابق هغۀ هم خپل سلطنت په جاګیر دارانو ویشلے وو. ترڅو چه بابر ژوندے وو هغۀ خپل جاګیر داران په خپل اطاعت مجبور ساتل. د جاګیر دارانو او بابر ترمینځه د اتحاد ذریعه صرف د بابر خپل ذات وو. او کوم وخت چه هغه د

میݜ نه او وتلو نو په دوی کښې هم انتشار پیدا شو- د هغهٔ جانشین همایون دومره مضبوط نهٔ وو چه د سلطنت شیرازه ئے د شلیدو نه بچ کړے وے-

د بابر شخصیت د دلکش او صافو مجموعه ده- هغه د علم مجلس ماهر، د ترکئ ژبے ښهٔ شاعر او د ترکئ او فارسئ یو بهترین لیکوال وو- هغهٔ چه کوم واقعات د "توزک بابری" په نامه لیکلی دی هغه د دے صنف یو بهترین کتاب ګڼلے شی- بابر خپل ذاتی حالات او واقعات په ډیرے صفائی او وضاحت لیکلی دی- هغه په منظر نګارئ کښے ډیر ماهر وو-کوم همایونه چه هغهٔ کتلی دی یا د کومو خلقو حالات چه هغهٔ څه رنګ لیکلی دی، هغه د دهٔ په متجس طبیعت او د دهٔ د منظر نګارئ په کمال دلالت کوی- بابر چه په خپل توزک کښے خپل ذاتی حالات او د کومو کسانو ذکر کړے دے. د هغے نه د بابر او د هغه کسانو خویونو، خصلتونو درسته اندازه لګیدلے شی

د جنګ په وخت کښے به بابر حد په ډوره خونړے وو- ولے د فتح نه پس به ئے د جنګ پرهرونه د عفوے او فیاضئ په ملهمو رغول- او دا صفت چه شاید هغهٔ ته د خپلو اسلافو نه په میراث کښے پاتے شوے وی- د چنګیز خان په اولاد کښے منګو، قوبلائی او غازان خان هم د دے صفتونو خاوندان وو- بابر د خپل ځان سره هندوستان ته د آلِ تیمور نغمه و شعر او د شرابو ذوق هم راوړو- د دے نه علاوه هغه د باغونو هم حد په هورته شوقین وو او په خپل ژوندئ په ښکلونو باغونه لګولی وو- او د دے مینے په وجهٔ د "باغ ساز بادشاه" نوم موندلے وو-

داخبره هم د فکر وړ ده چه هیرودوټس د زمانے (سنه ۵ ق-م) نه واخله د بابر تر زمانے (سنه ۱۵۰۰ئ) پورے د دوؤ زرو کالونو دا اوږده عرصه د پښتنو په تاریخ کښے د تاریخی معلوماتو په لحاظ یوه تاریکه او شنډه زمانه وه- په دے اوږده زمانه کښے د هیرودوټس نه پس بیا د پښتون قام د نوم، د دوی د ژبے او د دوی د مختلفو قبائیلو د نومونو په حقله هیڅ معلومات په لاس نهٔ راځی - ولے دا حال یواځے د پښتنو د تاریخ نهٔ دے- په دے اوږده زمانه کښے چه هرڅومره حمله آور قامونه د پښتنو په مزکه راغلی وو- او څومره خاندانونو چه په دے ملک کښے خپلے بادشاهئ قائمے کړے وے - د هغه ټولو قومونو او د هغه بادشاهانو حالات په یقینی ډول معلوم نهٔ دی او کوم لږ ډیر معلومات چه حاصل شوی دی هغه د آثار قدیمه په جزوی شهادتونو او د مسکوکاتو په مطالعو او د چینی او یونانی لیکوالو په تحریرونو اکثر په قیاسونو مرتب شوی دی- په اسلامی دوره کښے هم چه کومو بادشاهانو په دے زمکه خپل حکومتونه تشکیل کړی وو- د هغو درباری

مؤرخینو د بادشاهانو د جنګونو، د هغوی د فتوحاتو او د بادشاه د ذاتي اوصافو او اخلاقو نه بغیر نور څه نهٔ دي لیکلي. او تر څومره چه د عام اولس د تمدن، لباس، ژبې، نسل او د ژوند د لارو چارو تعلق دے دا تاریخونه د دے قسم معلوماتو نه بیخي خالي دي. لیکن بابر په خپل ذات کښې د یو فاتح نه علاوه د یو مؤرخ او نقاد صفات هم لرل. نو هغه چه کوم ملک ته تلے او د کومو خلقو سره د هغهٔ واسطه راغلې وه. د هغه ملک جغرافیائي حالات او د هغه خلقو د ژوند ژواک په حقله ئے هم خپل تاثرات ظاهر کړي دي. دغه وجه ده چه د بابر او پښتنو په تعلق کښې د پښتنو د تاریخ نه د تیرو پړک په پړک پردے هم لرے شوي دي. په دے بنا د پښتنو په تاریخ کښې د بابر واقعات ډیر اهمیت لري. دا خبره د یادولو ده چه بابر ټول پښتانهٔ خوا که هغه یوسف زي دي کهٔ دله زاک، بنګښ دي کهٔ وزیر او که نور بے د څه فرق او امتیاز نه د افغان په لفظ یاد کړي دي. د دے نه دا څرګندہ ده چه د اصلي او وصلي افاغنه په نامه چه د پښتنو قبائیلو کوم تقسیم د پښتنو شجره نویسو کړے او یا لکه چه څنے مغربي لیکوال پښتانهٔ قبائیل د "افغان او پټهان" په لفظ جدا کوي. دا تقسیم بیخي غلط او مصنوعي معلومیږي. او د وروستئ زمانے پیداوار دے.

# سوری خاندان (سنه ۱۵۳۹ء تا سنه ۱۵۵۵ء)

## شیرشاه سوری سنه ۱۵۳۹ تا ۱۵۴۵ء

د بابر په وفات او د همایون په تخت نشین کیدو په هندوستان کښې داسې حالات پیدا شول[1] چه د هغې په نتیجه کښې د پښتنو تار په تار طاقت بیا یو مرکز ته غونډ شو. د پښتنو د طاقت دا مرکز د سوری خاندان یو نومیالے شخصیت وو چه فریدخان نومیده - د پښتنو په تاریخ کښې سوری قبیله ډیر اهمیت ورکړه. په هند کښې د مسلمانانو د حکومت بنیاد ایښودونکے هم د دے قبیلے یو نومیالے پښتون سلطان معزالدین محمد غوری (سوری) وو - او د هند باثلې سلطنت هم د سوری قبیلے یو ننګیالی بیا راستون کړو

د شیرشاه اصلی نوم فریدخان وو - د پلار نوم ئے حسن خان او د نیکهٔ نامه ئے ابراهیم خان وه - د بهلول لودی د قام پرورئ په نتیجه کښې چه کوم پښتانهٔ د «روه» نه هند ته راغلی وو - په هغو کښې ابراهیم خان او حسن خان هم وو - ابراهیم خان د مهابت خان سور شاهو خیل چه د بهلول لودی د لوری نه په پنجاب کښې جاګیردار وو - ملازمت اختیار کړو - او د دهٔ پلار حسن خان د عمرخان سرواني ملازم وو - فریدخان د بهلول لودی په زمانه کښې په کال سنه ۱۴۷۹ء کښې په حصار فیروزه کښې اوزیږیدلو - څه موده پس د فرید خان پلار حسن خان د خپل مربيّ عمرخان په سفارش د جمال خان د لوری نه چه د سکندر لودی یو با اقتداره امیر وو - د سهسرام، حاجي پور او ټانډه جاګیردار شو -

د حسن خان څلور ښځے وے - د هغهٔ یوه ښځه پښتنه وه - فریدخان او نظام خان د هغې ځامن وو - هم په دے ډول خرم سلطان او شادی خان د هغهٔ د دویمے او علی او یوسف ئے د دریمے ښځے او احمد او سلیمان ئے د څلورمے او کشرے ښځے ځامن وو - د حسن خان مینه د خپلے کشرے ښځے سره ډیره

---

۱ د شیرشاه د زیږیدنې په تاریخ کښې اختلاف دے - ځینې مؤرخین د دهٔ د پیدائش کال سنه ۱۴۸۶ء هم ګڼي او د اوسني زمانې ځینې لیکوال داسې هم دی چه د هغوی په خیال کښې د دهٔ د زیږیدنې نیټه کال سنه ۱۴۷۲ء ده -

وه. او د فرید خان مورئ د نظرنه غورزولی وه. او په دې وجه به ئې فرید خان او نظام خان ته هم ښهٔ نظر نه کولو. فرید خان په دې خبره د پلار نه ناراض شو. او هغه جونپور ته لاړ (سنه ۱۴۹۴) او د جمال خان خوائ ته اونیوله. په دغه زمانه کښې جونپور د علم مرکز وو. فرید خان هم په حصول علم کښې لګیا شو. دوه درې کاله ئې د هغه زمانې مروجه کتابونه اولوستل. او د نظم او نثر او د تاریخ ئې ښه مطالعه اوکړه. ورو ورو د هغهٔ ذاتي اوصاف څرګند شول. په دغه ورځو کښې د فرید خان پلار حسن خان هم جونپور ته راغې. خپلو عزیزانو د فرید خان په باب کښې د هغهٔ په رویه هغه ملامته کړو. چنانچه د پلار او ځوی صفائي اوشوه. حسن خان هغه د ځان سره بوتلو او د جاګیر انتظام ئې هغهٔ ته حواله کړو. (سنه ۱۴۹۷)

فرید خان چه د خپل جاګیر د پاره کومه پالیسي وضع کړه د هغې په نتیجه کښې د جاګیر حالت یکسربدل شو. کومې زمکې چه د مودو مودو نه شاړې او غیر آبادې پرتې وې هغه آبادې شوې. د کاشتکارانو حقوق محفوظ کړې شول. او هغوی د اهلکارانو او زمیندارانو د ظلم او زیاتي نه خلاص شول. په جاګیر یو نوې دور راغې. پیداوار د وړاندې نه یو په دوه زیات شو. او د جاګیر سره متعلق ټول خلق اسوده او مطمئن شول. څه موده پس چه د فرید خان پلار حسن خان د خپل جاګیر چاج واخست نو هغه د فرید خان په انتظام ډیر خوشحال شو. ولې د فرید خان میرنۍ مور د فرید خان په دې ترقۍ او هر دلعزیزۍ ډیره خفه وه. او خپل خاوند ئې تر دې حده مجبور کړو چه هغهٔ د جاګیر انتظام د فرید خان نه بیا واخست. او سلیمان ته ئې حواله کړو. په دې خبره فرید بیا د پلار نه مرور شو او اګرې ته لاړ (سنه ۱۵۱۸ء).

دا د سلطان ابراهیم زمانه وه. فرید خان د دولت خان لودي ملازمت اختیار کړو. او د هغهٔ په ذریعه ئې بادشاه ته د خپل پلار د نامناسب سلوک شکایت اورسولو. ولې په دې موقع د هغهٔ داد رسي اونهٔ شوه. څه موده پس حسن خان وفات شو. او د بادشاه د لورې نه د پلار جاګیر فرید خان ته ورکړې شو. (سنه ۲۱-۱۵۲۰ء) - فرید خان چه فرمان حاصل کړو نو د خپل ورور سلیمان نه ئې جاګیر ترلاسه کړو. سلیمان د فرید خان برخلاف د جونپور حاکم «محمد خان سور» ته لاړ او د فرید خان برخلاف ئې د هغهٔ نه د مرستې خواست اوکړو. محمد خان د فرید خان نه د سلیمان د حق مطالبه اوکړه. ولې فرید خان انکار اوکړو. او ورته ئې اووې چه دا د «روه» ملک نهٔ دې چه ته به د سلیمان د پاره په ما بلندره کوې. بلکه دا هندوستان دې. او دا جاګیر ما ته د بادشاه په حکم راکړې شوې دې. او زما حق دې. دا هغه ورځې وې چه بابر بادشاه د ابراهیم برخلاف په هند حمله کړې وه. او چه د پاني پت په میدان

کښې ابراهیم اووژلے شو نو د فرید خان سره هم د ځان فکر پیدا شو. او ځکه د یو مضبوط مرستیال په غرض بهار ته لاړ. او د محمد شاه ملازمت ئے اختیار کړو. یوه ورځ د ښکار په موقع فرید خان یو زمرے په توره اووژلو او د دے کارنامے په وجه محمد شاه هغهٔ ته د شیرخان خطاب ورکړو. او د خپل ځوی جلال خان اتالیق ئے مقرر کړو.

څه موده پس شیر خان د محمد شاه په اجازت خپل جاګیر ته راغے. او د مقرره ورځو نه زیات اتال شو. یوه ورځ محمد شاه دګیلے په دول په مجلس کښې اووئیل چه شیر خان وعده خلافی اوکړه. محمد خان سورچه دغه وخت موجود وو. د دے موقع نه فائده واخسته. او وے وئیل چه شیرخان ډیر چالاک او مکار دے. هغه د محمود لودی. په اسره ناست دے. په دے خبره ئے د محمد شاه په زړهٔ کښې شک پیدا کړو. او ورته ئے اووے چه د شیرخان د راوستلو اسانه طریقه دا ده چه د هغهٔ جاګیر د هغهٔ نه واخستے شی. او د هغهٔ میړنی ورور سلیمان ته ورکړے شی. نو په خپله به محتاج شی. ولے سلطان محمد شاه د شیرشاه نه د جاګیر په اخستلو خو رضا نهٔ شو. البته محمد خان ته ئے اووے چه ته لاړ شه. او د شیر خان او د هغهٔ د ورور ترمینځه روغه اوکړه.

محمد خان د خپل فوځ سره خپل جاګیر جونپور ته راغے. او د روغ په ځائے ئے د خپل یو غلام او سلیمان په سرکردګئ کښې د شیرخان برخلاف فوځ اولیږلو. شیر خان هم د دوی مقابله اوکړه. ولے د شیرخان طاقت د دوئ په مقابله کښې ډیر کم وو. نو شیرخان د جاګیر نه بے دخله شو.

په دے ورځو کښې مرزا جنید برلاس د بابر بادشاه دلوری نه دکړه مانکپور حاکم وو. شیر خان دا غوره اوګڼله چه د مرزا جنید برلاس نه حمایت او کومک حاصل کړی. په دے غرض ئے د مرزا جنید سره خط وکتابت اوکړو او بیا د هغهٔ په خدمت کښې د ډیرو تحفو سره حاضر شو. او د هغهٔ نه ئے فوځی امداد واخست او خپل جاګیر ته راغے. محمد خان سور اوس د هغهٔ مقابله او نهٔ کړے شوه. او د ،، رهتاس ،، غرونو ته اوتښتید. شیرخان په خپل جاګیر بیا قابض شو. او د مرزا جنید فوځونه ئے ډیرو تحفو سره بیرته اولیږل. او د دے نه پس ئے خپل قام قبیله چه په غرونو کښې پټ شوی وو. راوبلل. او خپل جمیعت ئے ښهٔ زیات کړو. محمد خان سور ته ئے هم پیغام اولیږلو. چه زما غرض د خپل ورور نه د خپل جاګیر حاصلول وو. او هغه مے حاصل کړو. تهٔ زما د ترهٔ په ځائے ئے بے غمه خپل جاګیر ته راشه. زما هغه جاګیر بس دے کوم چه د بادشاه ابراهیم نه ما ته بخښلے شوے دے. په دے پیغام محمد خان هم د غرونو نه راکوز شو. او په خپل جاګیر کښې

میشته شو۔ او د شیرخان احسان مند هم ۔

په کومو ورځو کښې چه بابر په چندیری حمله کړې وه ۔ د بابر په فوځونو کښې شیرخان هم د ځینو نورو پښتنو سره شامل وو۔ او په دغه استوګنه کښې ئې د یو سترګه ور په شان د مغلو د هر حرکت جاج اخستلے وو ۔ او د ډیر غور او فکر نه پس هغه دے نتیجې ته رسیدلے وو چه که چرے پښتانهٔ اتفاق اوکړی او په یو مرکز راغونډ شی نو مغل د دوی مقابله نهٔ شی کولے ۔ هغه به دا راځ د هر پښتون مخکښې ظاهرولہ ۔ چنانچه عباس خان سروانی (د تاریخ شیر شاهی مصنف) د خپل تره شیخ محمد (چه هغه هم د شیرخان سره د چندیری په مهم کښې شامل وو۔) د خُلے نقل کوی ۔ او داسے وائی چه زهٔ (شیخ محمد) یوه ورځ د ابراهیم سروانی په ملګرتیا کښې د شیرخان خیمے ته لاړم ۔ په خبرو خبرو کښې ابراهیم دا اووئیل چه اوس د پښتنو د پاره د مغلو نه د هندوستان سلطنت بیا راګرځول ډیر ګران دی ۔ د دے په جواب کښې شیرخان او وئیل چه ،، اے شیخ محمده ! تهٔ زما او د دهٔ په مینځ کښې په د دے خبره ګواه اوسه چه که چرے بخت زما یاری او پښتنو زما سره مرسته اوکړه نو زهٔ به یو ځل مغل بیا دا تیک نه پورے باسم،،

او دا واقعه ده چه هغه دا خپله وینا رښتیا کړه ۔ شیرخان به اکثر دا وئیل چه د مغلو بادشاهان د سلطنت د معاملاتو نه خان نهٔ خبروی ۔ او هرڅه په وزیرانو پریږدی ۔ او د دوی وزیران رشوتونه اخلی ۔ او انصاف نهٔ کوی ۔ او داسے بادشاهان چه خپل فرائض نهٔ شی ادا کولے ۔ د سلطنت او حکومت مستحق نهٔ شی ګرزیدلے ۔

وائی چه د مهم چندیری نه پس شیرخان د مرزا جنید برلاس په وساطت د بابر په خدمت کښې پیش شو ۔ څه وخت پس دسترخوان اوغوړیدو ۔ ډوډی راغله ۔ خلق ډوډۍ ته کښیناستل شیرخان هم په ډوډۍ کښې شامل وو ۔ اتفاقاً د شیرخان په مخکښې د مهی کباب یوه رکیبئ هم پرته وه ۔ لیکن هغه وخت د دے د ږیکوړلو چاړهٔ نهٔ وه ۔ شیرخان سمدستی د خپلے بډے نه چاړهٔ راوویستله ۔ مهے ئے پرے ټوټے ټوټے کړو ۔ او ښهٔ په بے باکئ ئے اوخوړو ۔ دغه وخت په شیرخان د بابر نظر شو ۔ او هغهٔ د دهٔ دے کار ته حیران شو ۔ او په زړهٔ ئے اوخوړه چه داسے پښتون د مغلو د پاره یقیناً چه د ضرر نه خالی نهٔ دے ۔ نو هغهٔ خپل وزیر خلیفه ته په ترکئ ژبه کښې او وئیل چه دا سړے نظربند کړه ۔ په دے موقع میرزا جنید برلاس هم په ترکئ ژبه د شیرخان ډیره صفائی او وفاداری ظاهره کړه ۔ شیرخان اګرکهٔ په ترکئ ژبه نهٔ پوهیدو ولے د بابر د تندی په ګُنجو خو ښهٔ پوهیدلو ۔ هغهٔ ته د دوی د لب و لهجے او تکرار نه خپل انجام معلوم شو ۔ دغه وخت چه د بابر فکر بل خوا شو ۔ شیرخان د مجلس سترګے تورے کړے، بهر ته راووت او خپل جاګیر ته

ئې ځان راورسولو. او د دې نه پس ئې مرزا جنيد برلاس ته د خپلو بې اجازته تلو معذرت اوليږلو. ولې د دې واقع نه پس شيرخان د مغلو په اکرو پوهه شو. او د ځان د حفاظت په فکر شو. دغه وخت د شيرخان دپاره د محمد شاه د دربار نه سوا بل ځائے نه وو. نو هغه مجبوراً بيا بهار ته لاړ. سلطان محمد شاه د هغهٔ ډير قدر اوکړو. او په خپل زوړ دستور ئې د خپل ځوی جلال خان اتاليق مقرر کړو. څه موده پس سلطان محمد شاه وفات شو او جلال خان د هغهٔ جانشين شو. او شيرخان د هغهٔ نائب مقرر شو.

جلال خان يو ناتجربه کار ځلمے وو. د هغهٔ د خپلې لواني قبيلې اميران د شيرخان د زياتيدونکی اقتدار نه په ويره کښې شول. جلال خان ئې په صلاح کړو. او د شيرخان د وژلو سازش ئې اوکړو. ولې دا سازش ځرګند شو. د دې په نتيجه کښې جلال خان د خپلو لوهانو اميرانو سره په دې غرض بنګال ته اوتښتيدو چه د بنګالے د فوځونو په مرسته به په بهار حمله اوکړی. او په دې چل به د شير شاه نه ځان خلاص کړی. جلال خان هم دغه شان اوکړل. ولې لوهانو په ډيره بدرنګه تيښته اوکړه. او دغه شان شيرخان په جاتړه طريقه د بهار خود مختاره حاکم شو. د دې نه پس د شيرخان لاس ته د چنار علاقه هم راغله. او د دې په وجه د هغهٔ لاس ته ډير نغد مال او ډير سامان هم راغلو او په دې سره د شيرخان استقامت نور هم ښهٔ شو.

اګر چه شيرخان خود بهار خود مختاره حاکم شو. ولې هم په دې ورځو کښې دهغهٔ ته يو لوئے کړاو پيښ شو. " محمود لودی " د سکندر لودی ځوئے چه د بابر د فوځی غلبے نه رانا سانګا ته تښتيدلے وو. د رانا سانګا د شکست نه پس د حسن خان ميواتی او راجپوت راجګانو په مشوره د بابر مقابلے ته بيا اوپاريدو. د " جالوه " په مقام د بابر او محمود لودی مقابله اوشوه. چه په جنګ کښې محمود بيا تيښته اوکړه. او چتوړ ته لاړ. دغه وخت لودی اميرانو لکه عمرخان حاکم اجمير، اعظم همايون مسند عالی عمرخان، ابراهيم خان علی زیٔ، احمد خان پينی، يوسف خان بن مبارز خان يوسف زی، مينا خان بن ميان عطا شاهو خيل او داسے نورو په خپل مينځ کښې جرګه اوکړه. محمود لودی ئې ځان ته راوبللو. او هغه ئې خپل بادشاه اوټاکلو. د دې نه پس دوی ټول د خپل جمعيت سره بهار ته لاړل او د شيرخان/نه ئې د بهار د پرے ښودلو مطالبه اوکړه. شيرخان يو دوراندیش انسان وو. هغهٔ ته دا معلومه وه چه د محمود لودی په مقابله کښې پښتانهٔ زما مرسته نهٔ کوی. نو هغهٔ په رضا صلاح د محمود لودی نه دا اقرار نامه واخسته چه هرکله دوی د مغلو نه جونپور فتح کړی. نو بهار به شيرخان ته بيا حواله کړی. د دې اقرار نامے نه پس محمود لودی په بهار کښې باچا شو او شيرخان خپل جاګير ته راغے. په دغه ورځو

کښے بابر بادشاه په حق اورسید او همایون د هغهٔ جانشین شو۔

د محمود لودی د خپل پروګرام مطابق د مغلو د جنګ په نیت جونپور ته روان شو۔ او شیرخان ئے هم د ځان سره په تلو مجبور کړو۔ مغلو چه د پښتنو د تاخت اوازه واوریده نو جونپور ئے پرے ښود۔ او په تیښته لاړل۔ جونپور او د خواوشا تول علاقه د محمود لودی په قبضه کښے راغله۔ ولے د وعدے مطابق محمود لودی د بهار په پرے ښودلو کښے غړے غیچ کولے۔ او شیرخان ته خپله معامله ورځ په ورځ ګرانه ښکاریدله۔ د هغهٔ دا پوخ یقین وو چه د مغلو مقابله د محمود لودی د وس خبره نهٔ ده۔ او په دهٔ کښے د یوسلطنت د راستونولو صلاحیت نشته۔ ولے د حالاتو نه مجبور وو۔ همایون چه د جونپور د سقوط او د مغلو د شکست نه خبر شو نو د محمود لودی مقابلے ته د جونپور په لور راروان شو۔ د لکهنوتی په خواوشا کښے مقابله شروع شوه۔ هره ورځ به جنګ کیدلو۔ ولے څه فیصله به نهٔ کیدله۔ شیرخان چه په زړهٔ کښے د "محمود لودی" د رویئے نه ازرده وو۔ د مغلو سره تار اونیولو۔ او همایون ته ئے پیغام اولیږلو چه په ما باندے د بابر بادشاه ډیر احسانات دی۔ او د هغې بدله به زهٔ دا سے کوزه کړم چه د جنګ په وخت کښے به زهٔ په خپله رضا ماتے اوکړم او د غه شان به تاسو ته لاراوزګاره شی همایون په دے خبره ډیر خوشحاله شو۔ او شیرخان ته ئے د نورو ډیرو احساناتو اسرے ورکړے۔

بله ورځ په تود جنګ کښے شیرخان د خپلو فوځونو سره ماتے اوکړه۔ د دهٔ په ماتې په تول فوځ کښے اړے ګړے جوړ شو۔ او نتیجه دا شوه چه د پښتنو فوځونه اوتښتیدل۔ ابراهیم خان علی زئ اومیاں بایزید چه ډیر توریالی امیران وو۔ په دے جنګ کښے اووژلے شول۔ محمود لودی هم په بد حال پټنے ته لاړ او د سیاسیاتو نه ئے کناره کشی غوره کړه۔ او هم په دغه علاقه کښے په کال ۹۴۹ھ کښے وفات شو۔ د دے نه پس شیرخان د "چُنار" قلا ته لاړ۔ همایون اګرے ته راغے۔ او د دے ځائے نه ئے د هندو بیګ نوے یو امیر د "چُنار قلا" د حواله کولو په غرض په شیرخان پسے اولیږلو۔ ولے شیرخان د قلا د حواله کولو نه انکار اوکړو۔ او هندو بیګ واپس اګرے ته راغے۔

د همایون او محمود لودی په جنګ کښے د شیرخان کردار د قامی مفادو برخلاف او په ذاتی مفادو مبنی معلومیږی۔ واقعی چه په سرسری نظر کښے شیرخان د دے الزام نه بچ کیدے نهٔ شی۔ لیکن په حقیقت کښے چه هغهٔ څه کړی وو په هغې کښے هغه حق بجانب وو۔ د ټولو نه اول خو دے ته کتل پکار دی چه "محمود لودی" د "شاه شطرنج" حیثیت لرلو او که چرے هغه کامیاب شوے هم وے نو د محمود لودی په شان د یوکمزوری طبیعت انسان د پاره د هغه

طاقتورو اميرانو کوم چه د هغهٔ په مرسته ولاړ وو قابوکول ناممکن وو. او د دے لازمی نتيجه به خانه جنګی او په آخر کښے به بيا د مغلو کاميابي وه. دا خبره هم د فکرور ده چه په دے جنګ کښے کوم اميران شامل شوی وو. په هغو کښے د هر يو امير فوځي طاقت د شيرخان په مقابله کښے زيات وو. او د دوی ټولو مجموعي طاقت د مغلو د طاقت سارے وو. نو په ځائے د دے چه دوی د محمود لودی د پاره په شيرخان "بلند ره" کوله. او په هندوستان کښے ئے په هغهٔ د "دوهستان" قانون چلولو. دوی ته پکار وو چه د مغلونه ئے نورے علاقے نيولے وے. او شيرخان ئے د خپلے علاقے نه نهٔ وے محروم کړے. د شيرخان حکومت خو هسے هم د پښتو حکومت وو. او شيرخان په خپل قابليت حاصل کړے وو. څه رنګ چه د محمود لودی نيکهٔ بهلول لودی په خپل وخت کښے په خپل شجاعت حکومت ته رسيدلے وو. دا خبره هم په فکر کښے ساتل پکار دی چه په دے ټولو اميرانو کښے د شيرخان په شان قابل يو سړے هم نهٔ وو. دا اميران بے شکه چه د شجاعت خاوندان وو. ولے د سياست او دوراندېشۍ نه خالی وو. او په دغه زمانه کښے چه پښتانهٔ په کومو ناموافقو حالاتو کښے ګير وو. په هغې کښے د پښتنو رهنمائي د شيرخان غوندے يو مشر کولے شوه. چه د شجاعت سره د سياست، دوراندېشۍ او موقع شناسۍ صفات ئے هم لرل. پس زما په خيال کښے د شيرخان دا فعل د قامی مفادو په حق کښے وو. ځکه چه هغهٔ ته د مغلو سره مقابله کول د خپلو پښتنو په نسبت غوره ښکاريدهٔ. نو ځکه هغهٔ دا کار اوکړو.

همايون چه د "قلعه چنار" په باب کښے د شيرخان داراده نه خبر شو نو په خپله په هغهٔ پسے راروان شو. په شيرخان کښے د همايون د مقابلے طاقت نهٔ وو نو هغهٔ بيا په همايون چل اوکړو. او پيغام ئے ورا وليږلو چه که چرے بادشاه ما ته د چنار قلا پريږدی نو زهٔ به خپل فوځ د خپل ځوی په ماتحتۍ کښے د بادشاه کومک ته اوليږم. د همايون سره په دغه ورځو کښے د "بهادرشاه" والیٔ ګجرات د حملے خطره وه. نو د شيرخان سره ئے روغه اوکړه. شيرخان خپل ځوئے قطب خان او يو امير عيسیٰ خان د څه فوځ سره د همايون کومک ته اوليږل. ولے همايون لا د ګجرات په مهم کښے لګيا وو چه قطب خان د خپل فوځ سره بيرته پلار ته راورسيدلو. په دے موده کښے چه همايون د ګجرات په مهم کښے مصروف وو. شيرخان د بهار صوبه بيا خپل ځان ته صفا کړی وه. او خپل قوت ئے زيات کړے وو. دغه وخت هغه اميران چه د محمود لودی د پاره ئے د شيرخان نه بهار اخستے وو. د شيرخان خوا ته راغونډ شول. او د دے اميرانو په وجه د شيرخان قوت نور هم زيات شو. او هغه د هندوستان د بادشاهۍ حاصلولو په

منصوبه کښې نور هم سرګرم شو.

په دې ورځو کښې د بنګالې بادشاه (نقیب شاه) وفات شو. د بنګالې امیرانو جلال خان لوهانۍ چه د بهار وړاندې بادشاه وو. د بنګالې بادشاه او ټاکلو. ولې په هغهٔ کښې د حکومت اهلیت نهٔ وو. ډیر زر په ملک کښې ایرې کړې جوړ شو. په فوځ کښې پریشانی پیدا شوه. شیر خان د دې پریشانۍ نه فائده واخیستله. او د بنګال د تسخیر اراده ئې اوکړه. او ګړهی په مقام د شیرخان او بنګالې د فوځونو مقابله اوشوه. جنګ یو میاشت اوږد شو. ولې په "ګړهی" د شیرخان قبضه را نهٔ غله. دا ډیره نازکه موقع وه. په دغه ورځو کښې همایون د ګجرات د مهم نه فارغ شوې او اګرې ته راغلې وو. په دې موقع "خان خانان لودی" چه د همایون یو مقتدر امیر وو. همایون ته د شیرخان د روز افزوڼې ترقۍ خطرات ورښکاره کړل. او هغه ئې په شیرخان حملې ته اوپارولو. ولې همایون ورته اووې چه "شیرخان د چا څوک دې چه زما مقابله به اوکړي. اوس ټول فوځ سترې ستومان دې. د برشکال نه پس به په یو تاخت کښې شیرخان ته خپله شیرخانی وراوښایم. او په مشرقی صوبو کښې به د پښتنو نوې زرغونیدو ته پرې نږدم. داځې اووې او په عیش و نشاط کښې مشغول شو. هندو بیګ ئې د جونپور حاکم کړو. او ورله ئې هدایت اوکړو چه د شیرخان د حرکاتو نه ځان خبردار ساته. او د هغهٔ حالات باقاعده دربار ته رالیږه. ولې هلته هم شیرخان وو. هغه څو د مغل امیرانو په طبیعت د وخته نه پوهه شوې وو. چه دوئ په رشوتونو هرڅه کوي. نو په هندو بیګ ئې داسې تحفې ورسیې کړې چه د هندو بیګ قلم به د شیرخان د سفارش او ستائینې نه بغیر بل څه لفظ نهٔ لیکلو.

شیرخان چه هندو بیګ په خپل تار راواړولو. نو خپل ټول طاقت ئې د بنګال په تسخیر ورواچولو. د بنګال بادشاه د "ګوړ" په قلا کښې محصور شو. دا محاصره تر ډیرې مودې جاری وه. آخر بنګال د شیرخان په قبضه کښې راغې. او شیرخان د بنګال او بهار دواړو صوبو حکمران وو. دغه وخت د پښتنو هغه سردارانو او امیرانو ته چه د شیرخان خبرې به ئې د لیونتوب خبرې ګڼلې. رښتیا ښکاره شوې. او ټول د هغهٔ خوا له راغونډ شول.

همایون چه د شیرخان د دې کامیابۍ نه خبر شو نو هغه د شیرخان په تکل د چنار په لور روان شو. شیرخان د جنګی مصلحت په بنا د چنار نه بهار ته او بیا بنګال ته لاړ. دلته کښې هم هغه د جنګی مصلحت په بنا دارالخلافه خالی پرې ښووده او په یو ډرامائی انداز کښې د رهتاس په قلا چه د خپلو استحکاماتو او محل وقوع په وجه په هغه زمانه کښې

ناقابل تسخیر گڼلے شوه حمله اوکړه - او خپلے خزانے او آل و عیال ئے په دے قلا کښے محفوظ کړو- د دے قلا په حاصلیدو پښتنو ته لویه فائده اورسیدله - ټولو پښتنو خپل آل وعیال دے قلا ته راوستلو - او خپل ځانونه ئے د همایون جنګ ته بے غمه کړل - شیرخان خپل دوه ځامن قطب خان او عادل خان د قلا د حفاظت په غرض پرے ښودل - او په خپله سره د نورو پښتنو د چهارکنډ غرونو ته راغے - همایون چه د شیر خان په تعاقب کښے په بنګاله ورداخل شوے وو نو د بنګالے جادو پرے داسے اثر اوکړو چه درے میاشتے په ،،ګور،، کښے په عیش و عشرت کښے مصروف وو- په دے عرصه کښے شیرخان د خپلے چارے په فکر کښے لګیا وو- دا د برسات موسم وو - او د بنګالے بارانونو د همایون فوځیان د ښو د لاسه ډیر او تزنول -

همایون خو د بنګالے د قدرتی ښائست په وجه د تلو نوم نۀ اخستلو- ولے په دغه ورځو کښے په اګره کښے د مرزا هندال د بغاوت نه خبر شو نو له بدے ورځے سمدستی د اګرے په نیت راروان شو - په ،،ګور،، کښے ئے پنځه زره فوځ د یو امیر په نګرانئ کښے پرے ښود. په لاره کښے شیرخان د خپل لښکرسره د هغۀ مرکلی ته ولاړ وو - په دے موقع شیرخان خپل پیر شیخ خلیل همایون ته په دے عرض اولیږلو چه که چرے بادشاه ماله د بنګال صوبه د جاګیر په شکل کښے راکړی نو د بهار ټوله صوبه به زۀ بادشاه ته پریږدم - په دے پیغام همایون د شیرشاه نه نورهم بے غمه شو - ناساپه د شپے شیرخان د همایون په کیمپ حمله اوکړه - د مغلو په فوځ داسے ویره غالبه شوه چه په کوم طرف د چا وس اورسید په هغه لوری او تښتید و - همایون په خپله هم په ډیربد حال اګرے ته رااورسید -

د دے نه پس شیرخان بنګالے ته لاړ او د مغلو فوځونه ئے تالا ترغا کړل - او بیائے خپل یو امیر خواص خان د ،،مونګیر،، په تسخیر مامورکړو - په دغه ځائے کښے د همایون د لوری نه خان خانان لودی حکمران وو[1] - خان خانان د خواص خان په لاس کښے ګرفتار شو - او د شیر خان په خدمت کښے اولیږلے شو - شیرخان د دۀ په باب کښے د خپلو پښتنو امیرانو نه رائے اوغوښتله - ټولو ورته په اتفاق دااووے چه د قام دشمن دے او د سخت سزا مستحق دے چنانچه د شیرشاه په حکم هغه سنګسار کړے شو - په دے ورځو کښے د چنار قلعه هم فتح

---

[1] د دۀ اصلی نامه دلاورخان وه - او د هغه دولت خان لودی ځوئے وو چه بابرته ئے په پنجاب د حملے دعوت ورکړے وو - دلاورخان د همایون یو ډیر مخلص امیر وو - د همایون په وخت کښے دۀ د خان خانان خطاب او د وزارت عهده لرله.

شوه. او د هیبت خان نیازي او د سرمست خان اودل په لاس د د لکهنوتي او بهرایچ د علاقې هم فتح شوې. جونپور هم په دغه ورځو کښې د شیرخان په قبضه کښې راغې.

همایون په اګره کښې یو کال د لښکر په تیارۍ کښې لګیا وو. او بل کال دیو لک فوځ سره د شیرخان مقابلې ته روان شو. شیرخان هم د دوی مقابلې ته پنځوس زره فوځ جمع کړو. د قنوج په مقام د دوارو فوځونو مقابله اوشوه. ولې مغل فوځ د پښتنو وړومبی جنګ داسې ویرولې وو چه په اوله مقابله کښې ئې تیښته اوکړه. همایون په خپله دومره هیبت‌زده‌ شوے‌ وو چه تښتا توري اس سور شو او د میدان جنګ نه ئې ځان اوښکلو. او دومره فرصت ئې بیا نهٔ موند چه د خپل حرم او شاهي بېګماتو فکرئې کړے وے. د دوی د حفاظت کار ئې یو مصاحب ته حواله کړو. او په خپله د سیند غاړې ته راغې. ولې د بده مرغه په سیند باندې چه کوم پُل وو هغه هم مات شوے وو. نو همایون خپل اس په سیند کښې ور واچولو او ډوبیدو ته نزدې وو چه د شمس الدین یا نظام الدین نومې یو ماشکي په مړانه د مرګ نه بچ شو او په ډېره بد حال کښې اګرې ته اورسیدهٔ.

د همایون په کیمپ د شیرخان قبضه راغله. د ډېر مال حال نه علاوه شاهي بېګمات هم د پښتنو په قبضه کښې راغلې. ولې د پښتنو د آئین مطابق شیرشاه د دې بېګماتو د حفاظت ډېر سخت انتظامات اوکړل. او د خپل یو ډېر اعتباري او نیک امیر خواص خان په سرکردګۍ کښې ئې د رهتاس قلا ته اولیږلې. او ترڅو چه دوی هلته کښې وې د دوی د آرام او شاهي مراتبو او ضروریاتو پوره پوره خیال ساتلې شو. دا بېګمات په همایون پسې په ډېر احترام پنجاب ته اولیږلې شوې. او هغهٔ ته حواله شوې. د دې جنګ په موقع شیرخان دا متل وئیلے وو. د چرګ چه په کوم میدان کښې یو ځل اوتښتي که چرې هغه بیا جنګ ته راوستې شي. نو هغه بانګونه خو کوي. ولې جنګ نهٔ کوي. او دا متل واقعي چه مغلو په دې متل رښتیا کړو.

شیرخان هم د همایون په تعاقب کښې د اګرې په لور راروان شو. همایون چه د شیرخان د تعاقب نه خبر شو نو هغه د اګرې نه دهلي ته او بیا د دهلي نه لاهور ته راغې. دغه وخت د همایون حرم او شاهي بېګمات هم د شیرخان د لورې نه هغهٔ ته رااورسیدلې. د همایون دا مدعا وه چه د شیرخان برخلاف د خپل کشر ورور مرزا کامران نه کومک واخلي. کامران د بابر د وصیت مطابق د کابل، غزني او قندهار د صوبو حکمران وو. او هسې په نوم خو د خپل ورور تابع وو. ولې په زړهٔ کښې د هغهٔ بدترین دشمن وو. او په دې ځاؤ کښې ناست وو چه یو موزونه موقع د خپلې خود مختارۍ اعلان اوکړي. د همایون د تخت نشینۍ په دوئم کال چه هغه د شیرخان

د روز افزون اقتدار په وجه په مشکلاتو کښې ګیر وو۔ کامران پنجاب ته راغے۔ او په خپل خیال کښې ئې د پنجاب صوبه د خپل سلطنت سره اوګنړله۔ او د همایون او د شیرخان د جنګونو د نتیج په طمع په لاهور کښې کښېنا ست۔

ولے کامران همایون ته دومره بدنیته وو چه هغه د همایون د بادشاهئ په نسبت د شیرخان په بادشاهئ زیات خوشحال وو۔ دغه وجه وه چه هرکله کامران د همایون د راتلو نه خبر شو نو هغه ئې د پنجاب د راتلو نه منع کړو۔ او همایون د مجبورئ نه د سندھ په لور لاړ۔ لیکن شیرخان د همایون په تعاقب کښې د پنجاب په لور رار روان وو۔ او کامران چه د شیرخان د راتلو نه خبر شو نو هغه دا سے وارخطا شو چه شیرخان ته ئې د جنګ نه بغیر پنجاب په دے شرط پرے بنودلو چه د شیرخان د لوری نه به د کامران تعاقب نه کیږی۔ دا شرط اومنلے شو او کامران امانی سلامی په ابا سیند پورے وتلو۔ او کابل ته لاړ۔

چه د دهلی او آګره فتحه شول۔ او همایون د هندوستان نه په وتلو مجبور شو نو شیرخان په کال سنه ۱۵۳۹ء کښې د دهلی په تخت جلوس اوکړو۔ خپل لقب ئې "شیرشاه" کېښود. خطبه او سکه ئې په خپل نوم جاری کړه۔ د تخت نشینئ په وخت کښې د هغهٔ عمر شپیته[۶۰] یا اتهٔ شپیته[۶۸] کاله وو۔ او دا هغه عمر دے چه د پښتنو په قول په دے عمر کښې سړے "لسو ته پړس" واړی۔ لیکن شیر شاه په دے عمر کښې هم به ډیر لږه موده کښې پنجاب، ګوالیار، مالوه او د مارواړ څه حصه فتحه کړه۔ د مارواړ راجپوتو د شیرشاه ډیره سخته مقابله اوکړه ولے آخر ته هغه کامیاب شو۔ د فتح نه پس هغهٔ دا اوویل چه "د باجرے په روټئ دے د هندوستان بادشاهی داوکړی وه۔ ولے خدا ئے خیر کړو"۔

په کال سنه ۱۵۴۵ء کښې هغهٔ میواړ فتحه کړو۔ او د کالنجر قلا ئې محاصره کړی وه۔ چه د ګوله بارئ په موقع یوه ګوله د قلا د دیوال نه راواوټمبیدله او په بارود خانه کښې پرے وتله. او په دے وجه په بارود خانه کښې ناڅاپه اور اولګید۔ شیر شاه سره د خپل شیخ خلیل، ملا نظام او دریا خان شیرانی اوسوزیدلو۔ او بے هوشه پرے وتلو۔ په دے حال کښې چه به کله کله په هوش کښې راغے نو د فوځ حوصله افزائی به ئې کوله۔ او د قلا د فتح کولو ترغیب به ئے ورکولو۔ په دے حالت کښې عین هغه وخت چه د قلا د فتح کیدو خوشخبری ئے تر غوږ شوه نو ساه ئې ورکړه۔ دا ورځ د ربیع الاول دولسمه او کال سنه ۹۵۲ھ / ۱۵۴۵ء وو۔ شیرشاه پنځلس کاله د مختلفو علاقو حکمران او څه پنځه کاله د هندوستان بادشاه او د دهلی په تخت ناست وو۔

چه د هندوستان نه د همایون د وتلو او د شیرشاه د فتح اوازه د هندوستان نه

پښتونخوا ته اورسیدله. نو د هرے علاقے پښتانهٔ قبائیل د ځ ډ لے د جرګو او وفدونو په شکل کښے شیر شاه ته د مبارکبادئ په غرض رالروان شول. په دے وخت کښے شیر شاه لا د همایون د تعاقب په سلسله کښے په پنجاب کښے وو. شیر شاه د پښتنو د دے جرګو او وفدونو سره د خوشاب په مقام ملاقات اوکړو. په دے پښتنو کښے د شیخ قتال ځوئے شیخ بایزید هم وو. چه د اکثرو ابراهیم خیلو رسوری اولودی) پښتنو د مختلفو قبائیلو پیر او مرشد وو. د شیخ بایزید په لیدو شیر شاه هغهٔ ته ورمخکښے شو. او په پښتو کښے ئے ورته اووے.. او شیخه! په خیر راغلے. راغاړه ووځه ذومره ـ شیر شاه یو دوراندیش انسان وو. هغه د خپلے مورنئ ژبے په تاثیر پوهه وو. هغهٔ ته دا معلومه وه چه مورنئ ژبه د وفادارئ او قامی اتحاد یو زبردسته ذریعه ده. ځکه هغهٔ په دے موقع د دے دومره پښتنو په مخکښے په خپله مورنئ ژبه کښے خبرے کولے. چه په دے خلقو کښے دا احساس پیدا شی. چه د هند سلطنت اوس د پښتنو سلطنت دے. او د دے حفاظت د ټولو پښتنو فرض.

د خوشاب د دربار په موقع د شیر شاه په خدمت کښے د ،، حوت ،، قبیلے درے بلوچ سرداران یعنی اسماعیل خان، غازی خان او فتح خان هم حاضر شوی وو. دا سرداران د موجوده ډیره جاتو یعنی د ډیره اسماعیل خان، ډیره غازی خان، او ډیره فتح خان بانیان وو. په دغه زمانه کښے دا ټوله علاقه د بلوچو په قبضه کښے وه. همایون چه د شیر شاه د لاسه په تیښته روان او په ډیرے تنګسه کښے وو. نو د دے سردارانو بالخصوص اسماعیل خان د هغهٔ ډیر خدمت کړے وو. او د هغهٔ د ماشوم ځوی (اکبر) د پېټو د پاره ئے یوه ښکلے پاکیزه ښځه د تحفے په ډول هم ورکړی وه. او د دے خدمت په بدل کښے سره د دے چه د همایون د لاسه سلطنت وتلے وو. بیا هم هغه دے سردارانو ته د دے علاقے د جاګیر فرمان ورکړے وو. شیر شاه چه د همایون سره د دے سردارانو د دے نیک سلوک نه خبر شونو هغه د دوئ نه ډیر زیات خوشحاله شو. او نه صرف د همایون هغه فرمان ئے برقرار اوساتلو. بلکه د خپل لور نه ئے هم دے سردارانو ته د دے علاقے د جاګیر فرمان ورکړو.

د قطب قبلے په لور د شیر شاه د سلطنت پوله د مارګلے درے نه نڅ ده اوړیدلی. او د دے یوه وجه دا وه چه په دغه وخت کښے په کابل کښے د کامران مضبوط او مستقل حکومت قائم وو. او بله دا چه په دے زمانه کښے د راولپنډئ د خوا و شا غرونو کښے د پنجاب سرکښے قبیلے استوګنے وے. او دا قبیلے به هروخت په تاخت و باخت کښے مصروفے وے. نو د شیر شاه د پاره سمدستی دا خبره ګرانه وه چه هغه خپل سلطنت د اباسیند پورے او یا د اباسین نه په

قبله هم اوغزوی ـ البته د اباسیند په جنوب ددې بلوچ سردارانو د جاګیردارانو په ډول مقررولو نه دا قیاس مرسته موي چه همغهٔ د مغل سلطنت د غورولو د پاره هم د غه طرف خوبنی کړې وه. او که چرې مرګ همغهٔ ته موقع ورکړې وې نو شاید چه همغهٔ به د غه لارمغل سلطنت د قبلې په لور هم خور کړې وې

د پنجاب د قیام په موقع شیرشاه د مغلو د متوقع حملو او د پنجاب د غرنیزو سرکښو قبائیلو د سرکوبئ په غرض د جهلم نه قطب ته په یو موزون مقام د قلا جوړولو حکم اوکړو. ددې قلا نامه هم د بهار د همغه نا قابل تسخیر قلا په تقلید کښې «رهتاس» منسوب کېښودلې شوه. دا عظیمه او پرشوکته قلا د جهلم نه څه لس میله لرې د قطب په لور په یو غر باندې اباده شوی وه.

مناغلې کیرو د «قلعه رهتاس» د ستائینې نه پس داسې وائي چه «د دومره لوټې او وسیع طاقت یادګار (دا قلا) د شیرشاه په مختصر دور حکومت کښې ابادیدل مکمل کیدل ناممکن معلومیږی» مخکښې وائي چه «شهامت علی» چه د «کرنیل ویډ» سره په کال ۱۸۳۹ء کښې کابل ته تلې وو. نو همغهٔ د قلا رو هتاس سیل هم کړې وو. همغه دا بیکی چه دا قلا به په لس کاله کښې اباده شوی وی. پس که چرې داسې وی نو دا به شاید چه د بل بادشاه (سلیم شاه) د حکومت د ینیې پورې لا ختمې شوې نهٔ وی.»

د مناغلې کیرو قیاس درست دې ـ او د جهانګیر د توزک نه هم ددې مرسته کیږی ـ د قلعه رهتاس په باب کښې جهانګیر داسې وائي «د رهتاس» قلا شیرشاه آباده کړی وه. په دې قلا چه څومره خرڅ شوې دې ـ د همغې تفصیل په یو کاڼي کښې کنستلې شوې او د قلا په ټولو دروازو باندې لګولې شوې دې. په دې قلا شپاړس کروړه لس لکه درهمه خرڅ شوې دې ـ دا رقم د هندوستان په سکه کښې څلویښت لکه او پنځویشت زره روپئ جوړیږی. چه د ایران د یو لک شل زره تومان او د توران د یو ارب یو ویشت لکه او پنځه اویا زره توران خانئ برابر دی.[۱]»

د قلا رهتاس د قلا د تعمیر غرض او په دې قلا ددې دومره زیات خرڅ سبب د خان جهان لودی د الفاظو مطابق دا وو:-

«هرکله چه شیرشاه د خوشاب په مقام د پښتنو د جرګو او وفدونو سره اولیدل او

---

[۱] توزک جهانګیری ص۱۲۳

هغوی ته د انعامونو او خلعتونو ورکولو نه اوزګار شو. نو هغهٔ د "راۓ سارنګ" چه د ګهکړ قام یو سردار وو. د سرکوبئ په غرض یو فوځ اولیږلو. په دے وخت کښے شیرشاه په دے خبره متفکر وو. چه په یو موزون مقام داسے یو مضبوطه قلا جوړه کړی چه یواځے د ګهکړانو تابیا ترینه نۀ کیږی بلکه د هند په لور د مغلو د حملو د پاره هم یو مورچه وی. په دے غرض شیرشاه په خپله روان شو. او کوهستان نند نه او بالنات په غرونو کښے ئے یو موزون مقام غوره کړو. او د قلا د تعمیر حکم ئے اوکړو۔"

"کوم فوځ چه د ګهکړانو په تاخت مقرر شوے وو. هغې د ګهکړانو ټوله علاقه تاراج کړه. او د بالنات د غرونو (چه هلته به د ګهکړانو داروغه اوسیدلو) استوګن ئے هم اولوټل. او د ګهکړانو د سردارلورئے هم اونیوله. او شیرشاه ته ئے اولیږله. دا جینۍ شیرشاه خپل یو امیر (خواص خان) ته ورکړه. د شیرشاه د فوځونو د تاخت و باخت نه چه ګهکړان تنګ شول نو د هغوی سردار "راۓ سارنګ" د باجرے یو څو روټۍ او یو څو کمبلے شیرشاه ته اولیږلے. د دے نه د هغهٔ دا مطلب وو چه موږ ډیر غریبانان یو او د غه زموږ خوراک او لباس دے (او یا دا مطلب ترینه هم کیدے شی. چه زموږ ضروریات ډیر کم دی. او تهٔ موږ په دے حملو نهٔ شے ایل کولے). ولے شیرشاه د هغهٔ د چالاکۍ نه خبر وو. او د هغهٔ دا منشا وه چه د سارنګ قطعی فیصله اوکړی. نو د هغهٔ فوځونو خپل مهم جاری اوساتلو. په دے خبره "سارنګ" ډیر تنګ شو او په خپله د شیرشاه په خدمت کښے حاضر شو. چونکه د دهٔ د لاسه ټول ملک په تکلیف کښے وو. نو شیرشاه حکم اوکړو چه د دهٔ نه په ژوندون څرمنه اوباسئ او د بوسو نه ئے ډکه کړئ. او هم د غسے اوکړے شول۔"

"د دے نه پس شیرشاه د قلعه رهتاس د تعمیر و تکمیل په حقله تاکیدی فرمان جاری کړو. او د قلا د تعمیر کار ټوډرمل کهتری ته حواله شو. د تعمیر په دوران کښے ګهکړانو په خپل مینځ کښے دا بانده اوتړله چه په قلا کښے به څوک مزدوری نهٔ کوی. او کهٔ چا دا بانده ماته کړه نو هغه به د ملک نه شړلے شی. د دے قامی باندے په نتیجه کښے د قلا په تعمیر کښے بندیز راغلو. او ټوډرمل دا حالات شیرشاه ته اولیکل. شیرشاه د دے په جواب کښے هغهٔ ته دا اولیکل چه کوم سړے په دولت مئین وی او په هغې کښے بخل کوی. هغه د خپل بادشاه د خواهشاتو تکمیل نهٔ شی کولے. تهٔ په هیڅ حالت کښے د تعمیر کار مهٔ بند وه. دا تهٔ چه واۓ دا د خرڅ د زیاتوالی د خوف نه واۓ. څکه د تعمیر کار بند دے۔"

"ټوډرمل ته چه دا حکم اورسید نو هغهٔ دا اعلان اوکړهٔ چه د یو کاڼی په سر به یو اشرفۍ

مزدوری ورکولے شی ۔ د دے اعلان په اوریدو گهکړانو خپله قامی باندہ ماندہ هرڅه هیرکړل او د مزدورئ د پاره دا سے رامات شول چه په لږ و ورځو کښے تودړمل د یو کاني په سر یو روپئ مزدوری مقرر کړه ۔ دغه مزدوری څو ورځے پس د کاني په سر پنځو ټنکو[1] ته اورسیدله او څه لږه موده پس د یو کاني مزدوری یوه بهلولئ[2] شوه ۔ او په دے طریقه دا قلا سرته او رسیده ۔ او د تودړمل په ډیرے ښے طریقے ستائینه او عزت افزائی اوشوه[3] ۔

د شیر شاه په باب کښے دا یوه قیصه مشهوره ده ۔ او د دے نه د هغهٔ د آئنده ارادو او د خپل سلطنت په حقله د هغهٔ د پالیسئ اندازه لګیدے شی ۔ وائی چه یوه ورځ هغهٔ سارهٔ سارهٔ اسویلی کول ۔ او خفه ناست وو ۔ یو امیر ورته اووئیل " د سلطنت ټولے کشالے ، د ریاست مالی معاملات ، فوځ قوانین سلطنت او د حکومت ټولے شعبے غرض د سلطنت په حقله هره یوه خبره تا په دومره لږه موده کښے په دا سے قاعده او انتظام کښے راوستلے ده ۔ چه د دے نه وړاندے یو بادشاه هم په دا سے دستور نهٔ وو کامیاب شوے ۔ بیا هغه کوم څیز دے چه تهٔ ورپسے دا سے اسویلی کوے ؟ او هغه کوم ارمانونه دی چه تهٔ ورپسے دومره پریشان ئے ؟ " شیر شاه خواول دوی ته خپل زړهٔ نهٔ راسپړلو ۔ ولے چه دا میرانو اصرار زیات شو ۔ نو هغهٔ اووئیل ! تاسو چه څه اووئیل دا هرڅه رښتیا دی ۔ ولے ځلور ارمانونه مے لا دا سے پاتے دی ۔ چه هغه تر اوسه نهٔ دی پوره شوی ۔ او نهٔ ئے د پوره کیدو څهٔ طمع لرم ۔ او دا مے ګمان دے چه قبر ته به ئے د ځان سره یوسم ! امیرانو پوښتنه اوکړه چه هغه کوم ارمانونه دی ؟ د دے په جواب کښے شهنشاه دا اووئیل ۔ یو خو مے دا غټ ارمان دے چه د " روه " ټوله علاقه مے شاړه کړے وے ۔ او د دے علاقو دا ټول خلق مے د نیلاب (اباسین) نه د " ننده او شوالک " تر غرونو بلکه ان د لاهور پورے میدانونو کښے اباد کړے وے ۔ دا خلق به د مغلو هرے حملے د پاره یو دا سے ډال وو چه د کابل د دے نه به د هیڅ خوا په هغه باندے حملے کولو ته نهٔ غزیدله ۔ د دے آبادکارئ دوئمه فائده به د وه چه د دے غرنیزو پښتنو ژوند به په آرام او فراغت کښے تیریدو او دوی به د یو مهذب او اسوده ژوند څاوندان شوی وو ۔"

" دویم ارمان مے دا دے چه د لاهور ښار مے وران کړے ۔ ځکه چه دومره لوئے ښار د قبلے دلور نه هر حمله آور ته دا موقع ورکوی چه هغه دلته ځان میشته کړی او د هغه د حملے د

---

[1] د دغه وخت کښے د تانبے ټنکے په یو روپئ کښے شاملے وے ۔ یعنی زموږ دا اوسنئ نوے پنځه پیسے او یو ټنکه برابره وه ۔
[2] په یو روپئ کښے به څلویښت بهلولئ وے ۔ [3] تاریخ خان جهان لودی ماخوذ له سلطنت افاغنه ص ۱۵۱-۵۲

پاره دغه ښار خپل مرکز کړی.

" دریم ارمان مې دا دے چه د جهازونو دوه داسې نوې بیړې مې جوړې کړې. چه هر یو جهاز ئې لکه د سرائې په شان وسیع او ارام ده وے. او په دے جهازونو کښې د هندانه مکې معظمې ته د حج په غرض حاجیان تلې راتلې. او دا جهازونه مې داسې مضبوط جوړ کړے وے چه سرکښو طوفانونو او تیزو تندو بادونو دوی ته هیڅ نقصان نۀ شو رسولې. او خلق په کښې بې غمه په آرام و آسائش د مقدسو مقاماتو زیارتونو ته تلې راتلې شوے."

" او څلورم ارمان مې دا دے چه د ابراهیم لودی په قبرې یو ګنبد جوړ کړے وے. ولې په دے شرط که د چغتائی سلطان بابر په قبرې هم داسې جوړولې شوے. او دا دواړه ګنبدونه مې د فن تعمیر په داسې اصولو جوړ کړے وے. او داسې زیب و زینت او نقش و نګار پکښې شوے وے چه دوست او دشمن هرچا ئې ستائینه کولې. او دغه شان به زما نوم د قیامت تر ورځې پورې ژوندے پاتې شوے وو. ولې په دے ارمانونو کښې مې یو ارمان هم خدائے پاک لا نۀ دے پوره کړے. او دا ارمانونه به قبر ته د ځان سره یوسم. او څکه نن اسویلی کوم."

د شیرشاه دا ارمانونه د هغۀ د پالیسئ او د هغۀ د ارادو یوه هنداره ده. شیرشاه یو پښتون وو. او د ډیر ژور نظر خاوند. هغۀ د پښتنو د قامی خصوصیاتو نه ښۀ خبردار وو. هغۀ ته دا معلومه وه چه په روه کښې د پښتنو طاقت په خپل مینځ کښې په قبائیلی او خاندانی دشمنیو او ترګنیو کښې بې ځایه خرڅ کیږی. د دوی دا دودونه، دستورونه او قبائیلی ژوند په ځائې د دے چه د دوی طاقت د ملکی او قامی مجموعی مفادو په ښه راولی. دوی په خپل مینځ کښې د یو بل په وینو تویولو اماده کوی. او د قام په حیثیت د دوی وفادارئ د سلطنت استحکام ته نۀ پریږدی. نو که چرے دوی د خپلو غرنیزو کارو، سمځو، او کیږدو نه راووځی او په ابادو زرخیزو علاقو کښې استوګن او د یو ضبط و تنظیم لاندے د ژوند تیرولو اموخته شی. او د دوی د ژوند معیار بدل شی. نو دوی به په اصلی معنو کښې د سلطنت توریالئ څیتې اوګرځی. اوکۀ چرے شیرشاه ته د دے خپل ارمان پوره کیدو موقع په لاس ورغلی وے نو ممکنه ده چه نن د روه د دے پښتنو حیثیت بل شان دے.

د لاهور د ورانولو خواهش هم د هغه زمانې د حالاتو مطابق څه نازیبا خواهش نۀ معلومیږی. په هغه زمانه کښې د خبر رسانئ ذرائعو د نن ورځ په شان دومره ترقی نه وه کړی. د دهلی او کابل ترمینځه لاهور یو مرکزی ښار وو. د شیرشاه نه وړاندے محمد غوری دغه ښار د هند د حملو د پاره مرکز ګرځولے وو. مغلو به هم د دے ځایه په دهلی عیلې کولې. تیمور او

په هغۀ پسې بابر هم دغه طريقه اختيار کړې وه. او لاهور يو قسم د دهلي د حملې آورو ډيوړۀ حيثيت اختيار کړے وو. نو شير شاه به دا غوره ګڼلې وي چه هغو د دې پړاؤ سرخوړ کړي.

د هغۀ د دريم خواهش نه دا معلوميږي چه د هغۀ په زړۀ کښې د رفاهِ عامه شديده جذبه او د مقدسو مقاماتو انتهائي احترام موجود وو. په حيثيت د يو مسلمان د فريضۀ حج اهميت هغۀ ته معلوم وو. او د يو مسلمان بادشاه په حيثيت هغۀ دا فرض ګڼلو. چه د دے اهم فرض په ادا کولو کښې خپلو خلقو ته د هر قسم ممکن آرام و سهولت بند وبست اوکړي. د هغۀ د دے خواهش نه دا هم معلوميږي چه په هغه زمانه کښې به شايد چه د فريضه حج د ادا کولو د پاره د آمد و رفت د وسائيلو څه موزون او محفوظ انتظام نۀ وو.

د هغۀ څلورم خواهش زما په خيال کښې د هغۀ د قوميت او پښتونۍ د جذبې آئينه دار دے. ابراهيم د خپلو خويونو او پاليسۍ له کبله يو کامياب بادشاه وو، که ناکامياب؟ دا بيخي يو جدا خبره ده. ولې هغه د پښتنو بادشاه وو. او د پښتنو د طاقت مرکز وو. که يو طرف ته ابراهيم د خپلو اميرانو سره ښه رويه نۀ وه ساتلې. نو په بل لور خپلو اميرانو هم د هغۀ سره ناوړه کارونه کړي وو. ولې په کومه څوانمردۍ چه هغۀ د پاني پت په ميدان کښې جنګيدلے. او بيا چه د کومے بے ارزۍ او بے کسۍ په حالت کښې هغه د پاني پت په ميدان کښې ښخ شو. په دے به د هغه وخت د هر يو غيرتي پښتون زړۀ دړيدلے وي. او شير شاه چه د يو حساس زړۀ خاوند او په خپله د دے حالاتو ليدونکے يا اوريدونکے وو. هغۀ ته خو به په دے ډير درد رسيدلے وي. نو کوم وخت چه د هغۀ لاس ته طاقت راغلے وي نو يقيناً د هغۀ په زړۀ کښې به د ابراهيم د دے بے غرضۍ د تلافۍ خواهش پيدا شوے وي. ولې د ابراهيم په قبر د ګنبد جوړولو سره سم د چغتائي بادشاه بابر په قبر هم د هغه شان ګنبد جوړولو خواهش ظاهر کړے دے نو په دے کښې د هغۀ څه لوئ نۀ څرګنديدله. څکه چه ابراهيم د هغۀ خپل هم قوم او محسن بادشاه وو. ولې د بابر سره د هم هغه شان سلوک اراده لرل د هغۀ د فراخدلۍ دليل دے. پکار دا وو چه د ابراهيم لودي په قبر بابر بادشاه او يا د هغۀ جانشينو ګنبد جوړ کړے وے.

په کومو ورځو کښې چه شير شاه د همايون په تعاقب کښې پنجاب ته راغلے وو نو د ګهکړانو د تسخير سره سره ئے د پښتنو د نيازي قبيلې د تسخير کوشش هم اوکړو. دا خلق د اباسينډ په دواړو غاړو د کالاباغ سره نژدو اباد وو. د دوي علاقه نن ورځ په عيسٰی خيلو مشهوره ده. دا خلق په آسانه ايل شول. څکه چه د شير شاه د فوځونو اکثره حصه هم په دے پښتنو مشتمله وه. او د

شیرشاه یو ډیر اعتباری امیر هیبت خان نیازی هم د دے قبیلے یو غړے وو۔

شیرشاه د پنجاب نه د واپسئ په وخت کښے هیبت خان نیازی د پنجاب او ملتان د صوبوګورنرکړو ۔ او د هیبت خان په ماتحتئ کښے د شیرشاه یو وراره مبارک خان د نیازیانو د دے نوے مفتوحه علاقے حاکم مقررشو۔ د مبارک خان دحکومت په زمانه کښے د نیازیانو دهغهٔ ترمینځه یو داسے واقعه اوشوه۔ چه هغه د قبائیلی پښتنو د ژوند او تمدن یوه آئینه ده۔

نیازی قبائیل د سُنبل او عیسیٰ خیلو په دوو لویو څانګو کښے ویش دی۔ په قبیله سنبل کښے د الله داد نومے یو سړی یو لور ده په هورته ښکلی وه۔ او د ښکلا صفتونه ئے د کلی نه علاقے ته وتلی او په خلقو کښے خواره شوی وو۔ او ډیر خلق د هغے خواستګار وو۔ یوځل مقامی حاکم "مبارک" هم دا جینئ اولیدله۔ او د لیدو سره پرے مئین شو۔ او د دے دحصول په تابیا کښے لګیا شو۔ مبارک اګرچه پښتون وو ولے په هند کښے پیدا شوے او د قبائیلی پښتنو د ضابطے او رسم و رواج نه بیخی ناخبره وو۔ هغه خو په خپل خیال کښے خپل ځان حاکم ګنړلو، او د شیرشاه وراره، نوځکه ډیر مغروره وو۔ چنانچه هغه په پرده کښے "الله داد" ته خپل یواستاذے اولیږلو۔ او د هغهٔ لورئ د خپل ځان د پاره اوغوښتله۔

الله داد چه د دے حالاتو نه خبرشو نو هغه په خپله د مبارک په خدمت کښے حاضرشو او هغهٔ ته ئے اووے "د خان په حرم کښے ډیرے داسے ښکلی، شریفے او مهذبے میرمنے موجود دی۔ چه هغوی د مهذبے سوسائټئ د ادابو او د شاهانه اصولو او محلاتی ژوند نه ښے خبرداره دی۔ او زما جینئ غریبه یو بانډیچی جینئ ده۔ او صرف د "روه" د تمدن او ژوند نه خبروده۔ هغه نهٔ د شاهی محلاتو په ژوند پوهه ده۔ او نهٔ د شاهی محل د ژوند قابله۔ نو ستا او د هغے ترمینځه دومره فرق دے چه داواده نهٔ جوړښت لری او نهٔ به دا کامیاب وی۔ او په دے وجه زه دا خواست نهٔ شم منظورولے

که چرے مبارک خان د پښتنو د رسم و رواج نه خبروے نو هغه به دا خبره نوره نهٔ وه زیاته کړی۔ ولے هغه خو خپل حکومت ته غاوره وو۔ نو هغه د سُنبلو د ټولے قبیلے د ټنګولو او کړولو اراده اوکړه ۔ په دے غرض چه دا خلق چه تنګ شی نو الله داد به په خپله مجبورکړی ۔ او زما کار به اوشی ۔ لیکن دا د هغهٔ غلط فهمی وه۔ چه د سُنبلو قبیله د مبارک د ناوړه کارونو نه تنګه شوه نو د درے تنه مشرانو یوه جرګه مبارک ته راغله ۔ خبرے اترے شروع شوے۔ په دے خبره خو اتفاق راغے چه د دے نه وړاندے هم د "نیازیانو او سوریانو" د ترمینځه د

لونو خوئیندلو ورکړے راکړے شوی دی۔ ولے د جرګے ممبرانو دا سوال پورته کړو چه دا ورکړے راکړے د برابر برابر او سیال سیال ترمینځ شوی دی۔ یعنی دامیل لور د امیل ځوی ته او د وینزے لور د مریئ ځوی ته واده شوی ده۔ نو د الله داد لور تا ته ځکه نهٔ شی واده کیدلے چه ته د دغے سیال نهٔ ئے۔ او دا دوی ځکه وئیل چه مبارک اګرچه د شیرشاه وراره وو۔ ولے د هغهٔ مور وینزه وه۔ د جرګے په ممبرانوکښے د یو سړی د وینځے نه یو لور وه نو هغوی مبارک ته اووئیل چه که چرے خان خواه مخواه یو نیازی جینۍ کول غواړی نو دغه جینۍ به ورته واده کړے شی؛ مبارک د جرګے په دے وینا نور هم قهر واخست۔ ولے د جرګے ممبرانو ورته په صفالفظونو کښے اووئیل چه "دا کار هیچرے نهٔ شی کیدے خواه که موږ ټول په دے تباه ولے نهٔ شو"

مبارک د جرګے دا معقول عذر هم اونهٔ منلو۔ او د دے نه پس هغهٔ د ټولو نیازیانو د ټکولو اراده اوکړه۔ او په دے غرض ئے د سنبلو په یوکلی حمله اوکړه۔ کلے ئے لوټ کړو او یوه وینځه ئے اوتښتوله۔ په دے واقعه د نیازیانو د ټولو قبائیلو یوه مشترکه جرګه مبارک ته راغله۔ د قبائیلی رسم ورواج مطابق د جرګے د ممبرانو نه د هغوی وسلے بهرکیښو دلے شوے۔ جرګه شروع شوه نیازیانو د خپلے جینۍ د واپسۍ مطالبه اوکړه۔ او د الله داد د لور د ورکولو نه ئے قطعی انکاراوکړو او ورته ئے دا اووئیل چه تاچه کوم کارکړے دے هغه د پښتنو په روش کښے ډیر ناجائز دے۔ او چونکه زموږ او ستا ننګ شرم او غیرت شریک دے۔ نو تهٔ زموږ بے عزتی مهٔ کوه۔ ولے د مبارک دلوری نه هم هغه یو "نا" وو۔ اخر د جرګے ممبرانو هم خپلے ځلے راواسپړدلے۔ اوورته ئے اووئیل تهٔ په هند کښے پیدا شوے او لوئے شوے ئے۔ او په دے نهٔ پوهیږے چه د پښتنو کوم روایت او اصول دی۔ تر اوسه موږ دا نهٔ دی اوریدلی چه څوک دے هم چکونه لګوی۔ تهٔ په موږ چک مهٔ لګوه۔ تر دے وخته چه موږ څه اوکړل۔ دا ستا د ترهٔ شیر شاه لحاظ وو۔ ولے تهٔ چونکه د وینځے ځوئے ئے نو په خپل عزت پوه نهٔ شوے۔ اوکه چرے تا سره ستا د خپل ژوند څه قدر وی نوزموږ دا جینۍ په حیا کښے پریږده۔ د دے په جواب کښے مبارک خپلو نوکرانو ته د جرګے د ممبرانو د وهلو او شړلو حکم اوکړو۔ دغه وخت دامشران اګرچه د دوی سره وسلے نهٔ وے په مبارک او د هغهٔ په نوکرانو راواوښکیدل۔ او په لتو او څوکونو ئے د هغوی نه ساه اوویستله۔ او سره د مبارکه ئے ټول اووژل۔

چه داخبرشیر شاه ته اورسید نو هغهٔ هیبت خان نیازی ګورنر پنجاب ته داسے اولیکل۔ "په پښتنو قبائیلوکښے د سوریانو قبیله ډیره وړه ده۔ که چرے نور پښتانهٔ هم داسے یو یو "سوری" اووژنی نو په دوی کښے به یوکس ژوندے پاتے نهٔ شی۔ سنبل ستا خپله قبیله ده نو

دوی ته داسې سزا ورکړه چه دوی بیا د یو حاکم د وژلو جرأت نهٔ کوی - چه « سنبل » ددې واقع نه خبرشول نو دهغوی ټول غرونو ته اوښتېدل - او هلته په دوئ د هیبت خان څه وس نهٔ رسیدلو ځکه چه په دغه زمانه کښې لا د شیرشاه حکومت دومره لرې نهٔ وو خورشوې - هیبت خان نیازی د شیرشاه ډیر وفادار او اعتباری امیر وو- هغهٔ ته کرانه پلینبه شوه - سنبل د هغهٔ دلاس نه وتلی وو- نو د هغهٔ سره داویره پیدا شوه چه که سنبلو ته سزا ورنهٔ کړې شی نو شیرشاه به دا خیال اوکړی چه داګونډه دهٔ په رضا صلاح غرونو ته تښتولی دی - دغه وجه وه چه هیبت خان دخپل ځخ روني په خاطر دخپلې قبیلې سره په غدارۍ اماده شو- هغه سنبلو ته پیغام اولېږلو چه که چرې تاسو زما په ضمانت او اعتماد بیا خپلوکورونو ته راشئ نو زهٔ به ددې خبرې څه روغه جاړه راولم - « سنبلو » د هیبت خان په دې قول اعتماد اوکړو او د هغوی نهه سوه کهٔ ی د غرونو نه بیا ښکته راکوزې شوې - ولې دغه وخت هیبت خان ددې خلقو ټول نارینه افراد ګرفتارکړل - او وې وژل - او د دوی ښځینه ئې بندیوانې شیرشاه ته اولیږلې - چه شیرشاه ددې واقعاتو نه خبرشو نو هغهٔ په دې خبره ډیرخفګان ظاهرکړو او وې ویٔل چه په پښتنوکښې ددې نه وړاندې دومره ذلیل کارچا نهٔ دې کړې. ولې ددې سره ئې داهم اوویٔل چه د هیبت خان ددې فعل نه دا معلومیږی چه هغه د خپلې بادشاهۍ خیال نهٔ لری - ځکه هغو هغهٔ دخپلې قبیلې سره داسې ناوړه کار اوکړو- ولې بیا هم هغهٔ ته دومره پکار وو چه دومره بې غیرتی ئې نهٔ وې کړې - او دومره بې ګناه خلق ئې نهٔ وې وژلې - شیرشاه د هیبت خان په دې کار دومره خفه شوې وو چه د پنجاب د ګورنرۍ نه ئې د هغهٔ دلرې کولو اراده لرله - ولې ددې نه پس ډیرزر د هغهٔ د مرګ حادثه پلینبه شوه -

شیرشاه ډیو رعب دار او شاندار شخصیت خاوند وو - مغل اګرچه د هغهٔ ناقابل تسخیر حریفان وو - او د هغوی په رګونوکښې لا د وسطی ایشیا وینه تازه او د پښتنو په شان دهند د اوړدې استوګنې په وجه لا نهٔ وه کمزوری شوی ولې د هغوی په مقابله کښې شیرشاه دخپل قام په راغونډولو او دخپلو قابلیتونو په یو مرکز جمع کولوکښې د ډیرو لویو صفتونو خاوند وو - او هم ددې صفاتو په برکت هغه مغل د هند نه په وتلو مجبور کړل - دنیا ژبانو سره د پورته ذکرشوې ناخوشګوارې واقع نه چه په هغ کښې د شیرشاه هیڅ قصور نهٔ وو - بغیر د نورو پښتنو او سرحدی قبائیلو سره د هغهٔ څه ما ته ګڼو نهٔ وه پیښه شوی - او نهٔ د هغهٔ سلطنت د « مارګلې » د درې نه په قبله اوړد شوې وو - د دې باوجود هغهٔ

د همیشې د پاره دا مثالِ قائم کړو چه یو پښتون په ناموافقو حالاتو کښې هم محض د خپلو صلاحیتونو په برکت په یو پردی ملک کښې د خپل قام متفرق او تار په تار عناصر په یو مهم پسند دا ډطلبه فوځ طاقت کښې بدلولې شي ـ او د دې فوځ طاقت په کومک د پنځو کالو په لنډ ه تنګه موده کښې په یو وسیع ملک کښې یو وسیع او منظم سلطنت تشکیل کولې شي ـ شیر شاه چه په خپل پنځه کلیز دور حکومت کښې د رنګا رنګو مصروفیاتو باوجود په خپل سلطنت کښې کوم اصلاحات کړی دی ـ هغه د دهٔ د غیر معمولی قابلیتونو او صلاحیتونو یو څرګند دلیل دے ـ هغه د باغیانو ، بد دیانته او نو دولته نادیده خلقو د پاره بے رحمه وو ـ ولے د غریبانانو محتاجانو او شریفو خلقو د پاره د باران په مثال وو ـ هغهٔ د کاشتکارانو او د دهقانانو حقوق محفوظ کړل ـ او هغوی د غاصبانو د غصب نه په امان کړل ـ په ملک کښې د مسافرانو د آرام و اسائش په غرض ځ ځائے په ځائے سرا یونه اباد کړل ـ سړکونه ئے تعمیر کړل ـ ولے د هغهٔ د عظمت قابل قدر یادګار هغه عمارتونه دی کوم چه هغهٔ په خپل لنډ دور حکومت کښې تعمیر کړی وو ـ په زوړ دهلی کښې د هغهٔ د تعمیر کرده عظیمې قلا د شاندارې دروازې او فصیل نه د هغهٔ د شخصیت لوړ والے څرګند دے ـ او د دے فصیل دننه د هغهٔ تعمیر کرده جومات (مسجد) چه په خپلې سادګئ کښې کوم نفاست او عظمت لری ـ د هغې نه د اسلام د حقیقی روح اظهار کیږی ـ

د مغلیه خاندان مؤرخینو د شیر شاه سره ډیره بے انصافی کړی ده ـ خصوصًا ابوالفضل خو هغه د غاصب په نامه یاد کړے دے ـ ولے که د انصاف په نظر او کتلے شی نو د هندوستان په حکومت د بابر په نسبت د شیر شاه حق زیات وو ـ شیر شاه پښتون وو ـ په هند کښې پیدا شوے وو ـ او هندوستان ئے خپل وطن ګرزولے وو ـ پښتانهٔ د درے سوو کالو نه په هند کښې آباد وو ـ او د ممتاز حیثیت خاوندان وو ـ د درے سوو کالو په دے اوږده موده کښې سل شپږ شله کاله د هند حکومت براه راست د پښتنو په قبضه کښې وو ـ او په دے ټوله موده کښې د دهلی تخت د پښتنو په فوځی طاقت قائم وو ـ که چرے بابر د تیمور په شان خونړی حمله چه په هند ئے کړی وه ـ او په هغې کښې لکونه خلق وژلی شوی وو ـ ښارونه وران شوی او خلق لوټلی شوی وو ـ او په تلو راتلو او په هند کښې د قیام سره ئے ټولے پنځلس میاشتے تیرے کړے وے خپل ځان د پنجاب حقدار ګڼلو نو بیا خو د شیر شاه په لاس د هندوستان فتح کیدل د انصاف په نظر کښې خپل حقدار ته د حق رسیدل وو ـ ځکه چه بابر هم دا سلطنت د پښتنو نه اخستے وو ـ او شیر شاه هم پښتون وو ـ او که د

سلطنت فتحه کول غصب وی نو دا غصب اول بابر کړے وو - به هر حال دے ته فکر پکار دے چه په هره زمانه کښې هغه فیصله درسته منلے شوی ده چه هغه د توره په قلم اودوینې په سیاهۍ لیکلی شوې وی - نو په دے صورت کښې څو هږو د غصب سوال نۀ پیدا کیږی - په دے بنا د هر منصف او غیر جانبدار انسان په نظر کښې به شیر شاه ته غاصب وئیل په هر لحاظ ناجائز وی -

شیر شاه صرف پنځه کاله حکومت کړے وو - او سره ددے چه د هغۀ ډیر وخت په جنګونو کښې تیر شوے وو - بیا هم هغۀ په خپل سلطنت کښې دومره مفیده اصلاحات اوکړل چه د هغې په وجه هغه د هندوستان په لویو لویو بادشاهانو کښې حسابیږی - د شیر شاه د عظمت بنیاد د هغۀ په کامیاب نظم و نسق قائم دے - د ښۀ حکومت دوه خاص اصول به هر وخت د هغۀ مد نظر وو - یو خو دا چه بادشاه دِ هیچرے د خپل ملک د معاملو نه بے خبره نۀ وی - او بل دا چه هرڅوک دِ په اسانه او بے کړاوه هغۀ ته رسیدلے شی - او خپل فریاد دِ وررسولے شی - د خپل ترکی پیش رو برخلاف هغۀ د خپل حکومت بنیاد په "کلی وال" تنظیم ایښے وو - او کلی ئے یوه امتیازی حلقه ګرزولے وه - د څو څو کلیو به یوه پرګنه وه - او د هرے پرګنے نګرانی به د یو حاکم په ذمه وه - د کلی مشران او سپین ږیری به د جرائمو د تفتیش ذمه وار وو - د پیداوار دریمه حصه به په سرکاری مالیه کښې اخستے شوه - د مالیے تشخیص به د پیمائش په لحاظ کیدلو - او په وصولۍ کښې به ئے د سختۍ نه کار اخستلے شو - د سرکاری ملازمانو د بد دیانتۍ او د رشوت د بندیز د پاره د هر قسم تد بیرونه اختیار کړے شوی وو - کاشتکاران به په ډیرے آسانۍ بادشاه ته رسیدلے شول - د عدالتونو قواعد ساده او اسان وو - مقدمے به ډیرے زر فیصله کیدلے - د فوجدارۍ د مقدمو فیصله به قاضی کوله - او د دیوانۍ د مقدماتو فیصلے به "میر عدل" کولے - شیر شاه خپل فوځ ته بهترین تربیت ورکړے وو - او ددے فوځ نه به ئے د خپل رعیت د بهترۍ کار اخستلو -

غرض د خپلو لوړو کارنامو له کبله شیر شاه یقیناً د خپلے زمانے ډیر لوئے شخصیت وو - د هغۀ په شان د لوئے ارادے او پوخ عزم خاوند په هندوستان کښې هیڅوک نۀ وو - د هغه وجه وه چه هغۀ سمدستی دومره ترقی اوکړه - د هغۀ ژوند په ډیرو خبرو کښې د بابر په شان ښکاری - ولے په څینې خبرو کښې هغه د بابر نه هم زیات وو - هغۀ صرف د خپلو متو په برکت ترقی اوموندله - د رنګا رنګ سیاسی او خاندانی مشکلاتو مقابله هغۀ په ډیره سړه سینه او روڼ تندی اوکړه - او د تقدیر په مرسته دغه مشکلات د هغۀ د پاره د ترقۍ پانړکۍ او

گرزیدلے۔

په انتظامي معاملاتو کښې د شیرشاه په نظر کښې هندوان او مسلمان یو وو۔ د ملازمت او سلطنت په نورو معاملو کښې به هغهٔ په هندوانو او مسلمانانو کښې صرف د مذهب په وجه فرق نهٔ کولو۔ بلکه هغه داری او قابلیت ته به ئې کتل۔ دغه وجه وه چه هندوان د هغهٔ نه ډیر خوشحال وو۔ تودرمل چه وروستو د اکبر په عهد کښې د هغهٔ وزیر مال وو د شیرشاه د لاس په محکمه مال کښې لګیدلے بوټے وو۔ په پنجاب کښې د رهتاس عظیمه قلا هم د دے تودرمل په نګرانئ کښې جوړه شوي وه۔ شیرشاه په دے خبره ښهٔ پوهه وو چه د سلطنت استحکام او پائیداري د رعیت په خوشحالئ او آرام موقوف ده۔ دغه وجه وه چه هغه به د خپل رعیت د آرام او سوکالئ ډیر خیال ساتلو۔

شیرشاه په ملکي انتظام کښې ډیر مفید اصلاحات اوکړل۔ هغهٔ د "مال" او پولیس محکمې بیا د نوي سرنه منظمے کړے۔ د ډاک محکمې ته ئې هم ښه توجه اوکړه۔ هسې خو د ډاک محکمه د علاوالدین خلجي د وختو نه قائمه وه۔ ولے شیرشاه دے له ترقي ورکړه۔ په ملک کښې ئې اوولس سوه د ډاک څوکئ قائمے کړے۔ په هره څوکئ کښې به پیاده ډاکیان او اسونه تیار ولاړ وو۔ او څلور زره اسونه به هره ورځ د ډاک په اوړلو کښې مصروف وو۔ اکبر په خپله زمانه کښې د دے اصلاحاتو نه ډیره فائده واخسته۔ او هم د دے په بنیاد ئې د خپل نوي سلطنت لوړ عمل اودرولو۔ د شیرشاه په زمانه کښې د غل غلاوئ هیڅ ویره نهٔ وه۔ په خوشي بیدیا کښې به سرهٔ زر په لاس د چا مجال نهٔ وو چه چا ته ئې سترګے اړولے۔ د عدالت په وخت کښې خپل پردے او هندو و مسلمان د هغهٔ په نظر کښې یکسان وو۔ د انصاف په باب کښې به ئې د هیچا لحاظ نهٔ کولو۔ د فوځ د نقل و حرکت په وخت کښې به د خلقو د زراعت ډیر خیال ساتلے شو۔ او که چرے مجبوراً به چا ته څه نقصان اورسیدلو نو په ډیر ارت مټ به ئې د نقصان تلافي کوله۔ د هغهٔ دسترخوان هم د محتاجانو د پاره همروخت غوړیدلے وو۔

شیرشاه د پښتنو ډیر لوئے محسن وو۔ هغهٔ د پښتون په لوړتیا کښې ډیر مدې وو۔ د هغهٔ په وخت کښې به پښتنو بے د فوځي ملازمت نه بل څه کار نهٔ کولو۔ د هندوستان د پښتنو نه علاوه د "روه" پښتانهٔ به هم د هغهٔ د اکرام و انعام نه بے برخے نه وو۔ کوم پښتانهٔ چه به د روه نه د هغهٔ په خدمت کښې حاضر شول۔ هغوي به ئې د هغوي د توقع نه زیات پالل۔ شیرشاه د پښتنو په مینځ کښې د قبائلي امتیاز سخت مخالف وو۔ د هغهٔ په نظر کښې ټول پښتنو

قام صرف د پښتون يوه قبيله وه. د ابراهيم لودی د سلطنت زوال د هغهٔ نه پټ نهٔ وو- او د پښتنو هغه عيبونه او نقائص کوم چه د دے زوال باعث ګرزيدلی وو. هغه د سترګو د وړاندے وو- ولے افسوس دے چه مرګی په هغهٔ تلوار اوکړو- او د هغهٔ په اولاد کښے بل شير شاه پيدا نهٔ شو-

د شيرشاه په سلسله کښے د ‹‹ راجا پورن مل ›› د قتل ذکر هم ضروری معلوميږی- د شيرشاه مخالف مؤرخين د راجا پورن مل د قتل په باب کښے په شيرشاه د وعده خلافئ الزام لګوی او داوائی چه د وعدے او لوظ قول باوجود شيرشاه هغه قتل کړو- ليکن په اصل کښے شيرشاه د وعده خلافئ د الزام نه بری دے . واقعه دا سے وه چه راجا پورن مل په مسلمانانو بالخصوص په سادات بلګرامی باندے ډير ظلمونه کړی وو- دے راجا دا سيدان ټول وژلی او د دوی بيبيانے په زبردستئ د خپلو کورونو نه بهر ته راا ويستلے او د بازاری کنجريانو په شان ئے په لارو کوڅو کښے ګرځے کړے . او بے عزته کړے وے - کوم وخت چه شيرشاه د راجا قلا فتح کړه نو راجا د خپل سراو بال بچ د امان حاصلولو په غرض شيرشاه ته ډيرمال ورکړو- او شيرشاه د هغهٔ ځان بخشی اوکړه. ولے عام مسلمانان د شيرشاه په دے رويه ناراض وو- خو د شيرشاه د ويرے نه غلی وو- ولے چه شيرشاه قلا ته ورد ننه شو نو د سادات بلګرامی بيبيانے د خپلے داد خواهئ په غرض د شيرشاه په لار کښے ولاړے وے- او کومے ناکردے چه د راجا د لاسه د دوی سره شوے وے هغه ئے شيرشاه ته بيان کړے - او انصاف ئے طلب کړو- شيرشاه چه د دے ظلمونو نه خبر شو او د خپلے وعدے ته ئے اوکتل نو په ژړا شو- او دے بيبيانو ته ئے او وئيل چه زهٔ مجبور يم اوس ما د راجا سره د هغوی د حفاظت وعده کړی ده . ولے دے بيبيانو ورله اووے موږ خپل حق غواړو - که تا وعده کړی ده نو د خپلے وعدے په باب کښے د عالمانو نه فتویٰ واخله - شيرشاه په دے باب کښے د خپلو قاضيانو او مفتيانو جرګه کښينوله. او هغوی د سادات بلګرامی او نورو مسلمانانو په قصاص کښے د راجا پورن مل د قتل فتویٰ ورکړه چنانچه راجا پورن مل د هغه مقتولو په قصاص کښے اووژلے شو- په دے بنا د شيرشاه د وعده خلافئ هيڅ سوال نهٔ پيدا کيږی - د شيرشاه ذاتی وعده د شريعت د احکامو په نفاذ کښے نهٔ شوه حائل کيدے - د شريعت په قانون کښے پورن مل مجرم ثابت شوے وو- او هم د دے قانون مطابق هغهٔ ته سزا ورکړے شوه- بيا هم که چرے دا وعده خلافی او ګڼلے شی نو د دے الزام په هغه عالمانو او مفتيانو راځی چا چه دا فتویٰ ورکړی وه- د عالمانو او مفتيانو د دے جرګے مشر مرزا رفيع الدين نومے يو عالم وو . چه په هغه زمانه کښے د

علم و فضل په لحاظ ډیر مشهور ؤو۔

د شیر شاه د ذکرختمولو نه اول د بناغلی الله بخش صاحب یوسفی د هغه نوی تحقیق ذکر هم ضروری دے ۔ کوم چه دے بناغلی لیکوال په خپل کتاب " یوسف زی افغان" کښے په صفحات ۱۲۵، ۱۹۶، ۳۲۴، ۳۵۶ کښے د شیر شاه په باب کښے ذکر کړے دے۔ دے بناغلی چه د خپل کتاب په دے مذکوره صفحاتو کښے د شیرشاه په باب کښے څه و ئیلی دی د هغے مطلب دا دے چه، شیرشاه د یوسف زو د مندړ قبیلے د کمال زو د ځائگے یو فرد وو۔ او د ،،چملے،، په علاقه کښے د ،، سوری،، نومے یو کلی استوګن وو۔ او ددے کلی (سوری) په وجه په شیرشاه سوری مشهور وو۔ دا بناغلے لیکوال دا وائی چه کوم مؤرخین شیرشاه د سوری قبیلے یو فردگنی ۔ هغوی په غلطه دی ۔ په دے دلیل چه د یوسف زو مقامی روایات د شیر شاه په حقله دا وائی لکه چه پورته ئے ذکراوشو۱ دے دا هم وائی چه شیرشاه د بهاول لودی په زمانه کښے د سوری (چملے) نه هندوستان ته د ملازمت په تالاش کښے تلے وو۔

د بناغلی یوسفی صاحب ددے نوی تحقیق په حقله به زهٔ دومره اووایم چه د دهٔ دا وینا د ټولو تاریخی شهادتونو په بنا بیخی بے بنیاده او غلطه ده۔ شیرشاه د پښتنو یو لوئے او مقتدر میړهٔ او د هندوستان یو داسے عظیم بادشاه دے چه دخپلو غیرمعمولی کارنامو په برکت ئے دخپلو او پردو ټولو مؤرخینو نه خراج تحسین حاصل کړے دے۔ د داسے مقتدر بادشاه دژوند حالات هیچرے په مالله نهٔ شی پاتے کیدلے۔ او نهٔ پاتے شوی دی بلکه په ټولو مستندو تاریخونوکښے په ډیر تفصیل درج دی او موږ هم ددے تاریخونو په شهادت د شیرشاه حالات په دے تیرو پانوکښے لیکلی دی۔ په پښتنو قبائیلوکښے لودی او سوری قبیلے د هغه وخت نه معلومے او مذکورے دی کوم وخت چه د پښتنو نورے قبیلے لا نا معلومے وے۔ او نهٔ د پښتنو دا شجرے او د شجرو دا لیکوال موجود وو۔ دا خبره چه شیرشاه د سوری قبیلے یو فرد وو۔ د تاریخی شهادتونو نه علاوه د شیرشاه دخپل قول نه هم ثابته ده لکه چه د شیرشاه دلوری نه د هیبت خان نیازی په پیغام کښے مو دا خبره لوستی ده۔ په دے بنا د مستندو تاریخی شواهدو په مقابله کښے نامعلومو روایاتو ته ترجیح ورکول او تاریخی حقائق بدلول یو نازیبا کار دے۔ ددے غلط بیانئ په پس منظرکښے چه کومه جذبه کارکوی هغه ددے بناغلی په ټول کتاب کښے څرګنده

---

۱ فرشته ص ۲۲۴ ، خورشید جهان ص ۱۱۴

ده. دا ښاغلي د دې خبرې کوشش کوی چه د پښتون قام هر لوړ شخصيت او د پښتنو هره لوړه کارنامه د قبيله يوسف زی سره په څه نا څه شکل کښې وابسته کړی - ولې دے ته خيال نۀ کوی چه د شير شاه غونډے افراد د ټول قام مشترک ميراث ګڼلے شی -

د شير شاه مقبره د بهار په صوبه کښې د هغۀ په عنوانی جاګير « سهسرام » کښې ده. د شير شاه شهرت او ترقئ اغاز هم د دے ځائ نه شوے وو. او دغه ځائ د هغۀ آخری آرام ګاه شو. ددۀ د مقبرے عمارت د هندوستان په ښکلی عمارتونو کښې حسابيږی. دا مقبره د هغۀ ځوی سليم شاه تعمير کړی ده. ولې د شير شاه عظمت د زوړ دهلی د قلا او د قلعه رهتاس نه څرګند دے.

# اسلام شاه (۱۵۴۵-۵۳ء)

د شیر شاه د ناڅاپي مرګ په وجه د هغهٔ د جانشینۍ مسئله نازک صورت اختیار کړو. د هغهٔ مشر ځوی عادل خان چه ولیعهد سلطنت وو. په دغه وخت کښې په رنتهمبور کښې او د شیر شاه بل ځوی جلال خان د پټنې په "دیون" نومې کلی کښې وو. جلال خان نسبتاً نژدو وو نو امیرانو هغه راوغوښتلو. او د پلار د مرګ په پنځمه ورځ د کالنجر د قلا په څوا کښې ئې په عارضی طور تخت نشین کړو. جلال خان د اسلام شاه خطاب اختیار کړو چه وروستو په سلیم شاه مشهور شو. د تخت نشینۍ نه پس هغهٔ خپل مشر ورور ته د دې مضمون یو خط اولیکلو. چه ستا په غیرموجودګۍ کښې ما د تخت او فوځ د حفاظت په غرض ستا تر راتلو تخت سنبال کړے دے. او ستا د اطاعت نه بغیر مې نورڅه غرض نشته. د دې نه پس جلال خان د امیرانو په صلاح آګرې ته روان شو. په لاره کښې د شیر شاه یو بل ډیر اعتباری او معتمد امیر خواص خان د دوی سره یو ځائې شو. او د خواص خان او نورو امیرانو په اتفاق یو ځل بیا د جلال خان د تخت نشینۍ رسم ادا شو.

اسلام شاه یو ځل بیا خپل ورور ته د تخت د سنبالولو دعوت ورکړو. ولې عادل خان په زړهٔ کښې د اسلام شاه نه ویریدلو. هغهٔ دا اولیکل چه که قطب خان نائب، عیسیٰ خان نیازی، خواص خان او جلال خان جلوانی دا څلور امیران زما تسلی اوکړی. نو زهٔ به درشم. اسلام شاه دغه څلور واړه امیران وراولیږل او د دوی په صلاح عادل خان په دې شرط راغلو. چه د اول ملاقات نه پس به ستا کومه علاقه د جاګیر په ډول خوښه وی. هغه به درکړے شی. او تا به رخصت کړو. د دې امیرانو په ضمانت او ملګرتیا کښې عادل خان د خپل ورور سره د فتح پور سیکری په مقام ملاقات اوکړو. عادل خان یو آرام پسند او څان آسانه بنیادم وو. او د حکومت د کشالو نه په جاګیر خوشحال وو. نو "بیانه" ئې په جاګیر کښې واخسته. او د وعدې مطابق خپل جاګیر ته لاړ.

لږې ورځې پس اسلام شاه په خپل ورور بدګمانه شو. او د هغهٔ د ګرفتارۍ د پاره ئې خپل یو امیر اولیږلو. عادل خان چه د دې نه خبر شو نو هغه خواص خان ته لاړ چه په دغه ورځو کښې

ده میوات " حاکم وو- خواص خان د اسلام شاه په دے بے لوظئ ډیر ناراض شو. اوکوم امیر چه اسلام شاه د خپل ورور د گرفتارولو په غرض ورلیږلے وو هغه ئے قید کړو او د اسلام شاه نورو امیرانو ته ئے هم د اسلام شاه نه د بغاوت د پاره خطونه اولیږل. او په خپله د یو لوئے فوځ سره د عادل خان په مرسته کښے د اسلام شاه مقابلے ته روان شو. د عادل خان او اسلام شاه د روغ په فیصله کښے قطب خان نائب او عیسیٰ خان نیازی هم شامل وو. دوی هم د اسلام شاه په دے بے لوظئ خفه شول. او خواص خان ته ئے اولیکل چه عادل خان دِ په شپه کښے ځان اګرے ته رااورسوی. په دے غرض چه امیران به شپه په شپه هغهٔ ته د اسلام شاه نه ورواوړی. ځکه چه د ورځے به ئے د اسلام شاه سره سترګے لګی او دومره بے شرمی به نهٔ شی کولے.

اتفاقاً په کومه شپه چه دوی فتح پور سیکری ته رااورسیدل هغه د شب قدر شپه وه. خواص خان یو ډیر پرهیزګار او نیک بنیادم وو. هغه د جناب شیخ سلیم چشتی ملاقات ته لاړ او بیا په نفلونو شروع شو. او په دے شپه چه د څومره نفلونو هدایت دے هغه ئے اوکړل. او د دے په وجه اټال شو. او چه دوی اګرے ته اورسیدل نو کچه غرمه وه.

اسلام شاه د خواص خان په دے مخالفت ډیر اوویریدو. او خپلو امیرانو ته اووے چه که ما د عادل خان په باب کښے غلطی اوکړه نو تاسو زهٔ ولے منع نهٔ کړم. او دومره خوف واخست چه قطب خان نائب او هغه ټول امیران ئے چه د عادل خان سره په زړهٔ کښے ملګری وو. په ظاهره کښے د خواص خان سره د روغے په غرض اولیږل. او د دے نه ئے مطلب دا وو چه دا مقتدر امیران د ځان نه لرے کړم نو په خپله به رهتاس (بهار) ته لاړ شم او خزانه به ترلاسه کړم (د شیرشاه خزانه به په دے قلا کښے د حفاظت د پاره پرته وه) او بیا به د دوی سره پنجه واچوم. ولے د هغه وخت یو امیر ورته اووے که په نور فوځ دِ اعتبار نهٔ وی نو بیا هم لس زره فرملیان (د برمل اوسیدونکی) د شهزادګئ د زمانے نه ستا نوکران دی. او هغه ورسره موجود دی. د دے باوجود تهٔ تیښته کوے؟ که امیران هر څومره ستا مخالف دی ولے چه ستا سترګے وینی نو ستا نه تښتیدلے نهٔ شی. په دے خبره د اسلام شاه زړهٔ هم مضبوط شو. او جنګ ته تیار شو. کوم امیران ئے چه د روغے په نیت لیږلی وو. هغه ئے بیرته را اوغوښتل او د جنګ په نیت د ښار نه بهر رااووتلو. په دغه اثنا کښے د عادل خان او خواص خان ترمینځه په څه خبره بے اتفاقی پیدا شوه. او د دوی جمعیت خور شو. خواص خان او عیسیٰ خان نیازی میوات ته لاړل. او عادل خان یواځے پټنے ته لاړ. او د دے نه پس ئے د مړ ژوندی څه پته او نهٔ لګیده. اسلام شاه په خواص خان او عیسیٰ خان پسے میوات ته روان شو. د دوی په مینځ کښے جنګ اوشو. په اول

وار د اسلام شاه فوځونو تیښته اوکړه - ولې ډیر زر هغهٔ ته نوے کومک رااورسیدو - او د دے په مدد هغه په خواص خان او عیسیٰ خان بریالے شو - اسلام شاه د دے امیرانو په تعاقب کښے قطب خان نائب اولیږلو - او په خپله د چنار په لور لاړ - په لاره کښے ئے جلال خان جلوانی او د هغهٔ ورور چه دوی د عادل خان مرستیال وو، اووژل - د چنار نه ئے خزانه را واخسته - او ګوالیار ته ئے اولیږله - او په خپله آګرے ته راغے -

قطب خان هم په زړهٔ کښے د اسلام شاه نه ویریدلو نو هغهٔ د خواص خان تعاقب پرے ښودو او پنجاب ته راغے - او د هیبت خان نیازی سره تیکاؤ شو - اسلام شاه چه د دے نه خبر شو نو هیبت خان نیازی ته ئے د قطب خان د ګرفتارئ حکم اولیږلو - چنانچه هیبت خان هغه ګرفتار او اسلام شاه ته اولیږلو - او اسلام شاه هغه د خپل اوښی شهباز خان لوهاني سره د ګوالیار په قلا کښے قید کړو - دغه شان اسلام شاه هم د ابراهیم لودی کارنامے ورو ورو بیا ژوندئ کړے -

په اسلام شاه کښے یو غټ عیب دا وو چه هغه ډیر بدګمانه وو - اوس هغه په هیبت خان نیازی ګورنر پنجاب او شجاعت خان ګورنر مالوه بدګمانه شو - او دوی ئے خان له راوبلل - شجاعت خان خو حاضر شو او ځان ئے خلاص کړو - ولے هیبت خان ورنغلو - نو اسلام شاه په هغهٔ پسے پنجاب ته راروان شو - د دے نه وړاندے خواص خان هم د خپل فوځ سره پنجاب ته راغلے او د هیبت خان سره د اسلام شاه برخلاف تړل شوے وو - د دے دواړو امیرانو فوځئ طاقت د اسلام شاه نه یو په دوه زیات وو - دغه وجه وه چه نیازیانو خپله فتح یقیني ګڼله - ولے د جنګ نه اول د هیبت خان او خواص خان په دے خبره اختلاف راغے چه د خواص خان دا مرضي وه چه د اسلام شاه په ځائے دِ عادل خان حکمران شي - ولے نیازیانو دا ونیل چه دا سے نهٔ شي کیدے چه توره دِ لالا وهي او نوره دِ عبدالله وهي - موږ په خپلو تورو عادل خان ته تخت نهٔ ګټو - بادشاه به د نیازیانو نه وی - په دے خبره په دوئ کښے بے اتفاقی راغله - او خواص خان سره د خپل فوځ د جنګ نه بغیر د دوی نه جدا شو - په دے خبره د اسلام شاه زړهٔ ډاډه او د نیازیانو ډله کمزوری شوه - بیا هم نیازیان په بهادرئ اوجنګیدل - ولے ټینګ نهٔ شول - او تیښته ئے اوکړه - د دهنکوټ ته راغلل - اسلام شاه د رهتاس د قلا پورے چه د دهٔ پلار جوړه کړی وه د نیازیانو تعاقب اوکړو - او د دے نه پس ئے "خواجه اویس سروانی" د پولوئے لښکر سره د نیازیانو فیصلے ته پریښو - او په خپله ګوالیار ته راغے - خواجه اویس د نیازیانو نه شکست اوموندو او هیبت خان نیازی هغه را په مخه کړو - اسلام شاه چه د دے

واقعاتو نه خبر شو نو د نیازیانو د جنګ د پاره ئې یو لوئ لښکر ورا ولیږلو- د دے لښکر نه نیازیانو بیا تیښته اوکړه- او د هیبت خان آل و عیال هم د اسلام شاه فوځونو ګرفتار کړو- هیبت خان ګهکړو ته لاړ- اسلام شاه داځل بیا په هیبت خان پسے ورروان شو او دوه کاله د ګهکړو سره په جنګ اخته وو- ګهکړان ئې ټول تالا کړل. هیبت خان او د هغهٔ ورور سعید خان کشمیر ته اوتښتیدل- ولے د کشمیر حکمران د اسلام شاه د ویرے نه هغوی اوښول- او وے وژل- او د هغوی سرونه ئې اسلام شاه ته اولیږل- دغه شان اسلام شاه د نیازیانو د مهم نه اوزګار شو- او لاهور ته راغے- په دغه وخت کښے "مرزا کامران" د همایون د لاسه پنجاب ته راغے او د سلیم شاه پناه ئے اوښوله- ولے اسلام شاه یو مغرور انسان وو- د کامران سره ئے ښهٔ سلوک او نهٔ کړو- او کامران په خپله ویره کښے شو- او شپه په شپه په ډولئ کښے پټ اووتو- او تیښته ئې اوکړه- اسلام شاه ته دا پکار وو چه د کامران سره ئے ښهٔ سلوک کړے وے- او هغهٔ ته ئے سیاسی پناه ورکړے وے. او څه رنګ چه بابر د ابراهیم لودی تره د خپل ځان سره دیوسیاسی پناه ګزین په حیثیت ساتلے او د لودیانو په کورنئ مخالفت کښے ئے د هغهٔ نه کار اخستے وو- دغه کاردهٔ د کامران نه اخستے وے- ولے اسلام شاه د خپل طاقت په وجه مغلو ته څه اهمیت نهٔ ورکولو-

د پنجاب نه اسلام شاه دهلی ته لاړ- ولے په دغه ورځو کښے هغهٔ ته خبر راغے چه همایون په نیلاو (اباسیند) راپورے شوے دے- د دے خبر سره سم هغهٔ په حیرت انګیز سرعت دوباره لاهور ته راغے- ولے په دغه وخت هغه بیا خبر شو چه همایون بیا په اباسیند پورے شوے او د کابل په لور تلے دے- د دے نه پس سلیم شاه بیا دهلی ته او د هغهٔ ځائے نه ګوالیار ته لاړ- په دغه ورځو کښے څو واره د اسلام شاه د مرګ تکل شوے وو- او د هغهٔ دا خیال وو چه دا د امیرانو سازش دے- نو هغه په خپلو امیرانو نور هم بدګمانه شو- په نهٔ څه عذره یه ئے قیدول او وژل- تردے چه هغه خواص خان چه د شیرشاه یو ډیر مخلص او اعتباری امیر وو او هم د دهٔ په مرانه شیرشاه تخت حاصل کړے وو، په زړورتیا او شجاعت کښے ئے په خپله زمانه کښے مثال نهٔ لرلو- او د خپلے پرهیزګارئ له کبله په اولس کښے د خواص خان ولی په نامه مشهور وو- په دغه ورځو کښے د اسلام شاه د ناکړدو نه در په درکیه وو- او چه د دے اواره ګردئ نه تنګ شو نو "تاج خان کرلانی" ته چه د اسلام شاه دوست او د هغهٔ له خوا د سنبل حاکم وو- لاړ او د هغهٔ پناه ئے اوښوله- لیکن تاج خان د هغهٔ سره غداری اوکړه او د اسلام شاه په وینا ئے هغه ګرفتار کړو- او اسلام شاه ته ئے اولیږلو- اسلام شاه دا نیک او پرهیزګار سړے

په ډېره بې دردئ اووژلو - او د هغهٔ لاش ئې په سپين ميدان او غورځولو - وروستو د هغهٔ متعلقينو د هغهٔ لاش دهلی ته يوړو او هلته ئې دفن کړو - په اولس کښې ډېر خلق د خواص خان معتقد وو - او د دهٔ دا مرګ ئې د سوری ټبر د تباهئ پيش خيمه اوګنله - چنانچه هم دغسې اوشوه - اسلام شاه هم د دې نه پس سمدستی ناجوړه شو - او مړ شو - (۳۰ اکتوبر ۱۵۵۳ع) د اسلام شاه د حکومت زمانه تقريبًا نهه کاله وه - تاريخ وفات ئې د «زوال خروان» نه اوځی -

اسلام شاه يو ذهين، ډېر زړور او ديټ ارادې خاوند وو - ولې حد په صورته بدګمانه انسان وو - دغه وجه وه چه د خپلو قريبی دوستانو هم په هغهٔ اعتماد او اعتبار نهٔ وو - او د زړهٔ نه به ئې د هغهٔ سره مينه نهٔ لرله - د هغهٔ دا خواهش وو چه خپل ټول اميران د خپل لاس لاندې اوساتی - او په ملک کښې د بل هيچا طاقت پرې نږدی - د هغهٔ سره يو منظم او زبردست فوځ وو - او د دې فوځ په وجه د هغهٔ طاقت په هرچا بالا وو - هغهٔ د خپلو اميرانو طاقت کمولو په غرض ډېرې طريقې اختيار کړې - د هغوی جاګيرونه ئې ختم کړل - د اميرانو نه ئې جنګی هاتيان واخستل - د هغوی سپاهيانو ته به ئې د خپلې خزانې نه تنخواګانې ورکولې - د اميرانو د نګرانئ په غرض ئې ډېر جاسوسان مقرر کړل - ولې په دې ټولو خبرو هغهٔ د اميرانو په زړونو کښې د خپل ځان نه خوف او نفرت پيدا کړو - د هغهٔ پلار شير شاه چه په کوم تدبر ټول پښتانهٔ په يو مرکز راغونډ کړی وو - اسلام شاه د خپل سرکش طبيعت په وجه هغه جمعيت او قامی شيرازه بيا تار په تار کړه - هغهٔ د ابراهيم لودی په شان ډېر نوميالی پښتانهٔ اميران چه د شير شاه د سلطنت ستنې وې محض د خپل وهم په بنا بې ګناه اووژل - هغه هيبت خان نيازی چه د شير شاه په يو معمولی خط ئې د خپلې قبيلې نهه سوه ځوانان په ټکئ وژلی او د هغوی زنانه ئې بنديوانې شير شاه ته ليږلې وې - او خپل ځان ئې د پښتنولئ په آئين کښې دا غدار کړې وو - د اسلام شاه د لاسه در په دېکې او بې دردئ سره اووژلې شو - د نيازيانو قبيله چه د شير شاه فوځونه اکثر هم د دې قبيلې په ځوانانو مشتمل وو - د دهٔ د لاسه تباه و برباد شوه - د کوم حکومت بنياد چه په خوف او وېره قائم وی - هغه د خلقو په زړونو کښې ځائې نهٔ شی نيولې - د اسلام شاه د دې پاليسئ نه ډېرې خرابې نتيجې ښکاره شوې - د حکومت جرړې کمزورې او د ضعف و زوال آثار ئې شروع شول - ولې اسلام شاه د غير معمولی جسمانی طاقت او زړورتيا خاوند وو - نو ترڅو چه هغه ژوندې وو حالات تر هغې د هغهٔ په قابو کښې وو - ځکه چه د هغهٔ مخالفت او مقابلې ته په وس چا ځان نهٔ شو نيولې - دغه وجه وه چه همايون د هغهٔ په وخت کښې په هند باندې د حملې بريد نهٔ شو کولې - حالانکه يو ځل تر اټکه راغلې هم وو - ولې د اسلام شاه د وفات سره سم

حالات ډېر ژر بدل شول. او د شېر شاه د سلطنت محل یو دم را پرېوتو.

سره د دې عیبونو اسلام شاه یو علم دوست او خوش مذاق باد شاه وو. د عالمانو په صحبت او ملګرتیا مئین وو. خپله هم د علم نه بې بهره نهٔ وو. په زرګونو اشعار ئې په یاد یاد وو. د عالمانو فاضلانو سرپرست وو. د موسیقۍ سره ئې مینه لرله. په سهسرام کښې د شېرشاه مقبره چه د هغه زمانې د فن تعمیر یو شاهکار ګڼلے شي. د دهٔ تعمیر کړه ده. د مسافرانو په باب کښې دهٔ هم د پلار د دوخت طریقه جاري ساتلې وه. او د هغوی د آرام و اسائش په کاروانو کښې ئې زیات کوشش کولو. د غل غلو وی د رهزنانو په باب کښې د دهٔ په وخت کښې هم هغه قوانین وو. کوم چه د دهٔ پلار جاري کړي وو.

د اسلام شاه د عهد یو مشهوره واقعه د شیخ علائی واقعه ده. دے سړی د مهدیت دعوٰی کړې وه. او په ټول ملک کښې ډېر معتقدین او مریدان ئې پیدا شوي وو. دوئ به ډېره پاکه او ساده ژندګي تېروله. عالمانو د دهٔ د قتل فتویٰ ورکړې وه. ولې اسلام شاه د دهٔ قتل ته زړهٔ نهٔ ښولو. او ډېر کوشش ئې اوکړو چه دے د خپلو عقائدو نه انکار اوکړي. ولې شیخ علائی د خپلو عقائدو نه انکار نهٔ کولو. آخر د مجبورۍ نه اسلام شاه د دهٔ د وژلو حکم اوکړو. د غه وخت شیخ علائیٔ د طاعون په مرض ناجوړه وو. او چه درې دُرّې اوو هلې شونو ساه ترنه لاړه.

اګر چه په حیثیت د یو انسان اسلام شاه ډېر مغرور، تُند مزاج او بې رحمه وو. او خپل معمولي مخالفت به ئې هم نهٔ شو برداشت کولے. هغهٔ به د خپلې وعدې پابندي هم نهٔ کوله. لکه چه د خپل مشر ورور عادل خان او د شېر شاه د یو مخلص او نومیالي امیر خواص خان سره د هغهٔ د سلوک نه دا حقیقت څرګند دے. ولې باوجود د دے چه هغه د خپلو امیرانو په باب کښې ډېر خوفناک وو. هغه د انسانیت د لطیفو جذباتو نه خالي نهٔ وو. د هغهٔ صرف یو بېګمه (بي بي بائی) وه او د هغې سره ئې ډېره مینه وه. او دا سے معلومېږي چه د دے مېرمنې په اسلام شاه باندے ډېر لوئ اثر وو. لکه چه د مبارز خان (عادل شاه سوري) په معامله کښې اسلام شاه د هغهٔ د وژلو نه هم د دے مېرمنې په وینا منع شوے وو.

د پښتنو په سلطنت کښې اسلام شاه د مطلق العنان حکومت باني وو. او په دے وجه ئې په خپل وسیع سلطنت کښې امن و امان، ضبط و نظم او د خلقو د پاره ئې د آرام و اسائش فضا پیدا کړه. ولې د اسلام شاه د مطلق العنانۍ نه څېنې خرابې نتیجې هم اووتلې. د غیر معمولي قابلیت او طاقت باوجود هم د یو واحد انسان د پاره دا خبره ډېره ګرانه بلکه ناممکنه ده چه د سلطنت د هر ښاخ، هرې څانګې او هرې ورې لوئې معاملې پوره پوره نګراني اوکړے شي.

اسلام شاه دے ناممکن کارته ملا تړلی وه۔ او په خپلو وزیرانو او مخلصو امیرانو ئے پوره پوره اعتماد نهٔ لرلو۔ او هغوی ته به ئے پرانستے واگے نهٔ ورکوئے۔ او اهمے ذمه واری به ئے نهٔ ور سپارلے۔ اگرچه په خپل وخت کښے خو اسلام شاه په خپل مقصد کښے کامیاب شو ولے د اسلام شاه دے پالیسئ سلطنت او د پښتنو وسیع مفادو ته لوئے نقصان اورسولو۔ د هغهٔ ددے پالیسئ په نتیجه کښے د تعمیری سیاست حامل افراد پیدا کیدل بند شول۔ دغه وجه وه چه د هغهٔ د مرګ نه پس په پښتنو کښے د داسے مقتدر شخصیت خاوندان او د تعمیری سیاست طرفدار امیران ډیر کم وو۔ چه سلطنت ئے د درے ورے کیدو نه بچ کړے وے۔

په کومه طریقه چه اسلام شاه د خپلو امیرانو طاقت دکمولو کوشش کړے وو۔ په سیاسی لحاظ سره هغه په دور اندیشئ مبنی نهٔ وو۔ په دے طریقه هغه د پښتنو حقیقی او بنیادی طاقت تباه کړو۔ د هغهٔ په عهد حکومت کښے پښتانهٔ امیران اگرچه د طاقت نه محرومه وو ولے د دے په ځائے د هغوی زړونه د نفرت نه ډک وو۔ او کوم وخت چه د هغهٔ د مرګ نه پس د هغهٔ ورکوټے ځوئے فیروز خان تخت نشین شو نو دغه وخت دے زخم خورده امیرانو د فیروز په مقابله کښے د مبارز خان (عادل شاه) د انتهائی ناوړه کار (یعنی د فیروز قتل) کښے د هغهٔ مرسته اوکړه۔ او د هغهٔ حکومت ته ئے غاړه کیښودله۔

# د اسلام شاه له خوا د

## علوموفنونو سرپرستی او دهغهٔ د رفاه عامه کارونه

اگرچه اسلام شاه یو مطلق العنان بادشاه وو۔ او د خپلو امیرانو سره د هغهٔ رویه ډیره سخته او بے سلیبنه وه۔ د دے باوجود اسلام شاه یو روښن دماغ او مهذب بادشاه وو. او د خپل رعیت د بهترئ په باب کښے د هغهٔ خیالات، احساسات او ارادے ډیرے اوچتے او د قدر وړ وے. هغه به په هره ممکنه طریقه ـ خپل رعیت د بهترئ کوشش کولو. هغه د علومو فنونو لوئے سرپرست او د عال ۰ فاضلانو ډیر قدردان وو۔ او په خپل سلطنت کښے د تعلیم د اشاعت یه د کښ ـ ئے ډیر کوششونه کول۔ دغه وجه ده چه د هغهٔ په عهد حکومت کښے په علمی او تهذیبی ځانګو کښے قابل قدر ترقی شوی وه۔

اسلام شاه نهٔ صرف د خپل پلار د رفاه عامه کارونه جاری ساتلی وو۔ بلکه په هغ کښے ئے زیاتے هم کړے وو۔ شیر شاه په خپل عهد کښے د مسافرو د آرام د پاره په هر دوه کروهه کښے یوه لویه مسافرخانه جوړه کړی وه۔ اسلام شاه په خپل حکومت کښے په دے کښے نوره اضافه اوکړه

او په یو یو کروه کښې ئے مسافرخانه جوړه کړه. په دے مسافرخانو کښې به پوخ او اوم خوراک هروخت موجود وو. د شیرشاه په وخت کښې د دے مسافرخانو شیر اوولس سوه وو. د اسلام شاه په وخت کښې د دے مسافرخانو شیر درے زره اوڅلور سوو ته اورسیدهٔ. ددهٔ په وخت کښې به په دے مسافرخانو کښې غریبانانو ته خیرات هم ورکیدے شو.

د علومو په سرپرستۍ کښې اسلام شاه د خپل پلار نه هم وړاندے وو. دا د اسلام شاه د ذاتي توجه او د علومو او عالمانو سره د هغهٔ دمینے نتیجه وه. چه په دے دور کښې فارسي شاعری او فارسي ادب د ستائنے وړ ترقي اوکړه. د خپل پلار په مقابله کښې اسلام شاه زیات عالم او د فارسۍ ژبے یو بهترین او داوچت پائے شاعر وو. هغهٔ به مدام د شاعرانو، عالمانو او فاضلانو په ملګرتیا کښې خوشحال وو. د خپل محل سره متصل هغه د عالمانو د ناستۍ او مجلس دپاره یو ښکلے مکان جوړکړے وو. په دے ځائے کښې به شاعران او عالمان یو ځائے کیدل. او په خپل مینځ کښې به ئے ادبي بحثونه کول. اسلام شاه به هم اکثر په دے بحثونو کښې حصه اخسته. هغهٔ دا حکم کړے ووچه د هغهٔ په راتلو دِ دا عالمان، فاضلان د هغهٔ د تعظیم په خاطر هرګز د خپل ځائے نه نهٔ پاسی. د علومو او عالمانو سره دا اسلام شاه مینه دیوے واقع نه څرګندیږی. وائی چه یو ځل اسلام شاه د مولانا عبدالله سلطان پوری په ملګرتیا کښې په یوه تنګه دره کښې تیریدو چه ناساپه د مخالفانو لوری نه یومست هاتی را او زغلیدو. مولانا عبدالله د هاتی د مقابلے اراده اوکړه. ولے اسلام شاه هغه پرے نښودلو. په دے موقع مولانا اووئیل! اے شهنشاه ما پریږده چه ددے هاتی مقابله اوکړم. ځکه چه که تهٔ اووژلے شے نو په ټول سلطنت کښې به بد نظمی پیدا شی. او مخلوق د خدائے به تباه شی. ددے په جواب کښې ورله اسلام شاه اووئیل اے مولانا! تاسو دے خبرے ته خیال نهٔ دے کړے چه په هندوستان کښې نهه لکه پښتانهٔ موجود دی او هریو زما ځائے نیولے شی ولے که تهٔ ضائع شوے نو ستا په شان به په عمرونو کښې هم په هندوستان کښې بل پیدا نهٔ شی.

اسلام شاه یوائځے د اسلامی علومو قدردان او سرپرست نهٔ وو بلکه د هغهٔ په وخت کښے هندی شاعرۍ او هندی ادب هم ډیره ترقي کړی وه. د هندی ادب د ترقۍ کوم تحریک چه د شیرشاه په وخت کښې ملک محمد جاسي شروع کړے وو. هغهٔ د اسلام شاه په عهدکښے په سرګرمۍ جاری وو. د هندی ژبے مشهور شاعر «سور داس» چه وروستو د اکبردرباری موسیقار وو. د اسلام شاه په سرپرستۍ کښې او د هغهٔ د قدردانۍ په نتیجه کښې ځلیدلے وو.

شاه محمد فرملی یو پښتون امیر د دے عهد د هندی ژبے یو باکمال شاعر وو۔ د ده په باب کښے به مرزا کامران دا وئیل چه که شاه محمد خپل کلام په فارسئ ژبه کښے ظاهر کړے وے نو بین الاقوامی شهرت به ئے موندلے وو۔

اسلام شاه ته د خپل پلار نه یو وسیع سلطنت پاتے شوے وو۔ چه د پنجاب او سنده نه واخلې د چټاګانګ او سلهټ پورے خور وو۔ د دے سلطنت په رقبه کښے هغهٔ څه زیاتے او نهٔ کړو۔ د هغهٔ د انتظامی سرګرمو نه دا معلومیږی چه هغه د یو مؤثر مرکزی نظام حکومت مرستیال وو۔ د هغهٔ دا مقصد وو چه د یو لوئ فاتح په نسبت خپل ځان د یو لوئ منتظم په حیثیت اوښئی۔ هغه به د دے کوشش کولو چه د بادشاه حیثیت او اقتدار زیات کړی۔ او د غه شان خپل سلطنت ته استقلال ورا وبخښی۔ او د هغهٔ د کارنامو او اصلاحاتو نه دا واضحه ده چه هغه په خپل مقصد کښے کامیاب وو۔

اسلام شاه د خپل پلار څینے قوانین بحال پرے نښودل۔ او په څو کښے د خپل عقل او خیال مطابق ترمیم اوکړو۔ اګر چه د ځینو مؤرخینو مطابق هغه یو تنګدل او خپل طاقت ته غاوړ بادشاه وو۔ او د خپل پلار د سیاسی دور اندیشئ صفات ئے نهٔ لرل. ولے دا د دے مؤرخینو زیاتے دے۔ د اسلام شاه د کارنامو د ژورے مطالعے نه پس دا معلومیږی چه هغه د هندوستان په ډیرو لویو بادشاهانو کښے د حساب ید لو حق لری. هغه په خپل ژوند کښے د خپلو مقاصدو د حصول د پاره کوشان وو۔ د سلطنت استحکام او د خپل رعیت آسوده حالی او فارغ البالی به هر وخت د هغهٔ پیش نظر وه۔ اګر چه اسلام شاه به د سرکښو امیرانو سره سختی کوله۔ ولے په دے کښے هغه حق به جانب وو۔ د هغهٔ دا مقصد وو چه په پښتنو کښے د قانون احترام او د ضبط و نظم سره مینه پیدا شی۔ تر څو مره چه د رعیت او د هغهٔ تعلق وو، د رعیت د پاره د هغهٔ پالیسی په رحم و انصاف مبنی وه۔ د هغهٔ په انصاف او رعیت پرورئ د مغل دربار مؤرخین هم قائل دی۔ اسلام شاه به د خپل غیر معمولی طاقت او قابلیت په وجه د سلطنت ټولے محکمے په نظر کښے ساتلے۔ او معمولی جزئیات به هم د هغهٔ د تیز نظر نه نهٔ شو پټیدلے۔ هغه به د خپلو اهلکارانو هم سخته نګرانی کوله۔ او د دے نه د هغهٔ مدعا دا وه چه رعیت په آرام او اسوده وی۔ د خپل پلار نه د اسلام شاه پالیسی صرف په دے خبره مختلفه وه چه هغهٔ خپل سلطنت ته مزید توسیع ورکولو په نسبت دا غوره ګڼله چه کوم سلطنت هغهٔ ته د پلار نه پاتے شوے دے هغه به مضبوط او د سبا نظم و نسق په برکت په هغے کښے داسے امن امان قائم کړی چه خلق اسوده او فارغ البال وی۔ د ریاست په معاملاتو کښے او په عام اولس باندے د عالمانو غیر معمولی اثر هم

اسلام شاه د ځېلې انتظامي پالیسۍ په چلولو کښې یو بندیز ګڼلو - دغه وجه وه چه هرکله د مهدوي تحریک کارکنانو د معاشرې د اصلاح کارونه شروع کړهٔ نو اسلام شاه د هغوی سرګرمیانې په خوشحالۍ برداشت کړې - او د شیخ علائي او د دې تحریک د نورو چلونکو په باب کښې ئې د عالمانو په فتوۍ توجو نهٔ کوله - او ددې نه د هغهٔ غرض دا وو چه په دې طریقه به په یو لور د معاشرې اصلاح اوشي او په بل لور به د عالمانو غیر ضروري اقتدار کم شي -

غرض هغهٔ ټول انتظامي قوانین او اصلاحات چه وروستو د اکبر په سلطنت کښې په ترقي یافته او ترمیمي شکل کښې جاري شول - او د اکبر د شهرت باعث اوګرزیدل - په هغې کښې د ځنو آغاز د شیرشاه په وخت کښې او د اکثرو د اسلام شاه په وخت کښې شوې وو -

# سلطان عادل شاه سوری

د طاقتور اسلام شاه مرګ او د هغهٔ د جانشین فیروز ورکوتوالے پښتنو امیرانو ته دا موقع پیدا کړه چه د سلطنت په معاملاتو کښې دوی خپل وقار او اقتدار بیا قائم کړی . لکه چه د لودیانو په ذکرکښې وړاندے وښلی شوی دی چه د تخت نشینئ په معامله کښې به د امیرانو راے او مرضئ لوئے اهمیت لرلو. دا رواج د سوری پښتنو په سلطنت کښې هم جاری وو. چنانچه هر کله چه د مغلو په مقابله کښې شیرشاه د خپل قابلیت په وجه د پښتنو حیثیت بیا اوچتولو. نو پښتنو امیرانو هغه په ډیرے خوشحالئ د خپل یومشر او قائد په ډول قبول کړو. په سنه ۱۵۳۹ع کښې د چونسے په مقام د همایون شکست شیرشاه د بنګال، بهار او جونپور مالک اوګرځولو. او د اګرے او دهلی د فتوحاتو لارے هم د هغهٔ د پاره پرانستله. نو د هغه خدماتو په اعتراف کښې کوم چه شیرشاه د پښتنو د قامی وقار او سیاسی اقتدار په حصول کښې سرانجام کړی وو. عیلی خان سروانی یو امیر د امیرانو په یوه جرګه کښې د شیرشاه د بادشاه کولو تجویز پیش کړو. او ټولو امیرانو په اتفاق د دے تجویز تائید اوکړو او شیر شاه هم منظور کړو. او داسے اووئیل:-

«اګرچه د بادشاهئ عهده ډیره لویه او د ډیرو ذمه واریو معامله ده. ولے چونکه زما دوستان او زما خواخوږی دا ذمه وارئ ما ته حواله کول غواړی نوزهٔ هم د دوی د دے خواهش سره اتفاق کووم. او په دے کارکښې د دوی نه د مرستے او سرګرم تعاون غواست کووم». دا د دے خبرے څرګند ثبوت دے چه شیرشاه د خپل قام د مشرانو په راے منتخب شوے بادشاه وو. دغه شان د شیرشاه په وفات (سنه ۱۵۴۵ع) د شیرشاه د ولیعهد او مشر ځوی عادل خان په ځائے د هغهٔ دویم ځوئے جلال خان (اسلام شاه) بادشاه منتخب کول د دے خبرے وضاحت کوی چه د بادشاه په انتخاب کښې به د امیرانو راے لوئے اهمیت لرلو. د اسلام شاه د ځوی (فیروز) قتل او د عادل شاه سوری بادشاه کیدل د دے خبرے بل ثبوت دے چه د پښتنو د بادشاه انتخاب به د پښتنو امیرانو په مرضئ موقوف وو.

دا رواج د سوری خاندان تر آخری عهده جاری وو. چنانچه سکندر شاه سوری چه د عادل

شاه نه بغاوت اوکړو - او په اګره او دهلی ئې قبضه اوکړه نو هغهٔ د اميرانو د يو جرګې مخکښې دا اووئيل ! زهٔ هم ستاسو نه يو سړے يم - او په تاسو باندې هيڅ فوقيت نهٔ لرم. که چرې تاسو ما د بادشاهئ قابل نهٔ ګڼئ نو را شئ چه يو مضبوط او قابل مشر د ځان د پاره غوره کړو - او زهٔ به اول سړے يم چه د هغهٔ دوفادارئ قسم به اوکړم - د دې نه دا هم معلوميږي چه د زوال او بے اتفاقئ په ورځو کښې هم پښتانهٔ په دې اصول ملک ولاړ وو - چه بادشاه د دوی د يو غوره کړی مشر حيثيت لری - او نهٔ د دوئ د يو مالک -

په ۳۰ اکتوبر سنه ۱۵۵۳ء اسلام شاه وفات شو - او د هغهٔ د وصيت مطابق د هغهٔ ورکوټے ځوئ فيروزخان چه دغه وخت د دولسو کالو وو په ګواليار کښې تخت نشين شو - او تاج خان کرلانړ چه د هغهٔ د پلار يو قابل اعتماد امير او د مرګ په وخت کښې اسلام شاه هم د خپل ځوی سرپرست مقرر کړے وو - د هغهٔ وزير شو - تاج خان يو ډير هوښيار او لوئ مدبر انسان وو - هغهٔ په داسې طريقه د سلطنت انتظام روان کړو چه د بادشاه او رياست دواړو د پاره بهتر وو - ولې کوم اميران چه د اسلام شاه د لاسه دړديدلی وو - هغوی د تاج خان په وزارت ناراض وو - تاج خان چونکه د کرلاڼي قبيلے وو او د سوری قبيلے د ځنے اميرانو خواهشات د تاج خان په وزارت کښې نهٔ پوره کيدل - په دې وجه هغوی په سازشونو شروع اوکړه - په يو لور هغوی د اسلام شاه بيګمه " بي بي بائ " د تاج خان د اقتدار نه اوويروله او ورته ئے او وے چه تاج خان د اسلام شاه په وخت کښې هم د هغهٔ قابل اعتماد وو - او تا هم هغهٔ ته ټول اختيارات اوسپارل - ولې هغه د خپلے بادشاهئ خيال لری - دغه شان ئې هغې ته د تاج خان د لرے کولو مشوره ورکړه - په بل لور دے اميرانو د مبارز خان سره چه د نظام خان ځوئ، د شير شاه وراره او د اسلام شاه او ښيے وو - او د اسلام شاه په وخت کښې ئې د هغهٔ دويرے نه په دروغه ځان ليونے کړے او په بيانه کښې استوګن وو - د بادشاهئ د پاره سازش شروع کړو - چنانچه مبارز خان د اسلام شاه د مرګ په دريمه مياشت[1] د يو فوځ سره ګواليار ته راغے او ننغ د فيروز شاه محل ته د هغهٔ د مرګ په نيت ورغے - او د خپلے خور د منت زارئ او ژړا فرياد باوجود ئې خپل ورکوټے خورئے اووژلو[2] او د اسلام شاه په تخت ئے قبضه اوکړه -

---

[1] اکثر مورخينو د عادل شاه سوری تخت نشينی او د فيروز د قتل واقعه د اسلام شاه د مرګ په دريمه ورځ ليکلی ده - ليکن د تاريخ داؤدی مؤلف احمد ګار دا واقعه د اسلام شاه د مرګ نه درے مياشتے پس ياده کړی ده - او ما هم د دے ليکوال ليکنو ته ترجيح ورکړه - [2] وائی چه په خپل خاندان کښې د اسلام زنور په صفحه ۵۹

د تخت نشینۍ نه پس مبارز خان د عادل شاه لقب اختیار کړو. دا لفظ وروستو د دهٔ د ناوړه کارونو په وجه په عوامو کښې په "عدلی" او بیا په "اندهلی" مشهور شو. د فیروز شاه قتل او د عادل شاه تخت نشینۍ کو یا د هغه امیرانو فتحمندی وه کوم چه د خپلې آزادۍ په لړکښې د بادشاه مطلق العنانۍ منلو ته تیار نهٔ وو. د اسلام شاه مضبوط اقتدار او د هغهٔ قوانینو دا امیران بے لاسو بے پښو کړی او د حکومت د ملازمینو حیثیت ته رسولی وو. ولے د اسلام شاه مرګ دوی ته بیا دا موقع پیدا کړه چه دوی خپل وړومبے سیاسی حیثیت او اقتدار ترلاسه کړی. اګرچه د فیروز په شان د یو کم عمر بادشاه په موجودګۍ کښې هم دوی خپل اقتدار حاصلولے شو. ولے دوی دا خیال اوکړو چه د یو مطلق العنان بادشاه څوک به هم شاید چه مطلق العنان وی. د دے نه علاوه چونکه فیروز د خپل پلار دخوا نه د تخت نشینۍ د پاره نامزد شوے وو. او د هغهٔ په تخت نشینۍ کښې دے امیرانو هغه خپل روایتی حق نهٔ وو استعمال کړے. په دے وجه هم دوی د هغهٔ جانشینۍ منلو ته تیار نهٔ وو.

د تخت نشینۍ نه پس عادل شاه په امیرانو کښې د خپل ځان د مقبولولو په غرض په فضول خرڅۍ لاس پورے کړو او د شیر شاه او اسلام شاه خزانې په داسے بے دردۍ سره خرڅ کړے چه خلقو د فیروز شاه د قتل واقعه هیره کړه. چونکه د شیر شاه په خاندان کښې د عادل شاه په مقابله کښې بل څوک زیات مستحق نهٔ وو. په دے وجه د عادل شاه تخت نشینی خلقو او منله. عادل شاه هم خپل طرفدار امیران په خطابونو او انعامونو ښهٔ خوشحال کړل. او دوه میاشتے پس چه د حالاتو جاج واخست نو ټول امیران د هغهٔ طرفدار وو. د دے نه پس هغه چُنار ته لاړ. او د هغه ځائے نه د شیر شاه خزانے ترلاسه کړے. او بیا ګوالیار ته راغے.

عادل شاه د موسیقۍ په فن کښې د خپلے زمانے یو ډیر لوئے باکمال استاد منلے شو. او په موسیقۍ کښې به د دهٔ کمالاتو ته د دے فن لوئے لوئے ماهران حیران وو. د اکبر د دربار مشهور موسیقار "تان سین" او د مالوے پښتون بادشاه باز بهادر چه د موسیقۍ په فن کښې ئے لازوال شهرت حاصل کړے وو د ده شاګردان وو. عادل شاه خپل ځان او خپل قوتونه د موسیقۍ فن ته وقف کړی وو. د هغهٔ په تخت نشین کولو کښې د امیرانو اصل مقصد دا وو چه د عادل په شان

(پاتې حاشیه له ۹۵۵ھ) شاه هم د دے مبارز خان نه خطره کیدله. او خپلے بګیے ته به ئے دا وئیل چه که د خپل ځوی خیر غواړے نو ما ته اجازت راکړه چه دا ورور (مبارز) دِ قتل کړم. ولے هغې به اجازت نهٔ ورکولو. د اسلام شاه دا خیال ډیر زر درست ثابت شو. او د هغهٔ ځوئے د دے لیونی مبارز خان د لاسه اووژلے شو.

بادشاه چه تووله ورځ ئې درباب سرینده سره کاروی په وخت کښې به د سلطنت حقیقي اختيارات د دوی په لاس کښې وی ولې داسې او نهٔ شوه - عادل شاه اگر چه خپل ځان موسیقئ ته وقف کړے وو - ولې د بادشاه کیدو نه پس هغه هم دامیرانو په باب کښې داسلام شاه پالیسی اختیار کړه - اوکوم وخت چه هغهٔ خپل تخت د خپل ځان د پاره محفوظ اوګڼلو نو دغه وخت ئې دخپلو پښتنو امیرانو سره سنګر ارم کړل - ولې عادل شاه یو بله پالیسی اختیار کړه - هغهٔ د پښتنو امیرانو په مقابله کښې هندو عنصر ته ترقي ورکول شروع کړهٔ - چنانچه هیموئې په وزارت مقرر کړو - او د هغهٔ اختیارات ئې ډیر وسیع کړل - دغه شان ئې یو بل نومسلم هندو ته چه د موسیقئ په فن کښې ډیر ماهر وو - د مجاهدخان خطاب ورکړهٔ او هغهٔ ته ئې دلس زریز منصب ورکړو - د عادل دا منشا وه چه د دے خپلو نوی امیرانو په مرسته او حمایت د پښتنو امیرانو طاقت ختم کړی -

اگر چه عادل شاه هم د امیرانو په باب کښې د اسلام شاه پالیسی اختیار کړه . ولې په هغهٔ کښې د یو مطلق العنان او خود مختار بادشاه کیدو اهلیت نهٔ وو - د بادشاهئ مقام څو ډیر لوړ مقام دے . په عادل شاه کښې د یو معمولی عهدے د ذمه واریو اوچتولو اهلیت هم نهٔ وو - په بے شاره موقعو هغهٔ د خپل نا اهلیت مظاهرے کړی دی - په یو موقع هغهٔ د خپلو امیرانو دجاګیرونو د تبدیلئ او تقسیم په غرض ګوالیار کښې یو دربار منعقد کړو - ولې کوم وخت چه ځنې امیرانو په سختئ سره د خپلو جاګیرونو د نهٔ پرے ښودلو اراده څرګنده کړه - او د امیرانو په مینځ کښې خبرے زیاتے شوے نو عادل شاه هرڅه هیر کړل - او د ډیرے ویرے نه خپل حرم ته اوتښتیدلو - او په ډیره مشکله ئې ځان د مرګ نه خلاص کړو - دده نه دا صفا معلومیږی چه په هغهٔ کښې د خپلې فیصلې د نافذ کولو نهٔ طاقت وو او نهٔ ئې څه اهلیت لرلو - دغه شان چه په ۹۶۳ھ کښې د بنګال ګورنر محمد خان سوری چه د هغهٔ مقابلې ته راروان شو نو د عادل شاه د لاسو پښو نه دم اوختلو - او هغه په ډیر منت او ساټلو نه انداز کښې د هغه د مقابلې د پاره هیمو رااوبللو - دے واقعے دا هم ثابته کړه چه په عادل شاه کښې سیاسی تدبر او دور اندیشی څو لا پریږده چه هغه د پښتنو د هغه بنیادی صفت یعنې شجاعت او جنګی قابلیت نه هم محرومه وو -

غرض په عادل شاه کښې څو نهٔ د پښتنو عام صفات وو - نهٔ په هغهٔ کښې د یو بادشاهئ د ذمه وارئ د اوچتولو اهلیت وو . دده باوجود هغهٔ په خپل حماقت ټول پښتنا نهٔ امیران دځان دشمنان کړل - او دغه شان ئې د پښتنو د سلطنت د تباهئ سامان پیدا کړو -

د عادل شاه د رویے په نتیجه کښې د هغهٔ د تخت نشینئ سره سم په ټول سلطنت کښې د

بغاوت باد والوت. لکه چه اووټلې شول د اسلام شاه په شان عادل شاه هم د خپلو امیرانو په تباه کولو لاس پورې کړو. په ابتداء کښې هغهٔ خپل یو شو امیران لکه دولت خان نیازی او فیروز خان کاکړ اووژل. او نصیب خان سرواڼي، اسماعیل خان، الله داد خان میانه او نظام خان نشاهوخیل وغیره ئې قید کړل. د تاج خان کرلاڼي نه هم د عادل ډیره ویره کیدله. ولې تاج خان یو ډیر هوښیار بنیادم وو. هغهٔ چه د عادل شاه په اکرو پوهٔ شو نو د ګوالیار نه اوتښتیدهٔ. د غه شان هغهٔ خپل اوښی ابراهیم خان سور ته هم سترګې خړې کړې. ولې هغه هم په تیښته کښې کامیاب شو. او بیائې ته لاړ. د عادل شاه یو بل اوښی احمد خان سور هم د هغهٔ نه بغاوت اوکړو.

غرض په ټول سلطنت کښې بغاوت شروع شو. تاج خان کرلاڼي په جنوبي بهار قبضه اوکړه. محمد خان سور د بنګال ګورنر په بنګال کښې د خپلې خود مختارئ اعلان اوکړو. ابراهیم خان سور او احمد خان سور (چه وروستو د سکندر شاه په نامه مشهور شو) د عادل په مقابله کښې د شیر شاه د تخت دعویٰ اوکړه. په دې ورځو کښې عادل شاه د دې باغیانو سره په ځوک ځپیړه کښې لګیا وو. چه د مالوې ګورنر شجاعت خان وفات شو. او د هغهٔ په ځائې د هغهٔ ځوئې باز بهادر د مالوې ګورنر شو. باز بهادر هم د دې اړی ګړی نه فائده واخسته. او هغهٔ هم په مالوه کښې د خپلې خود مختارئ اعلان اوکړو.

په عادل شاه کښې نهٔ خو د دې بغاوتونو د ختمولو اهلیت وو. او نهٔ هغهٔ د اختلالونه سر ته رسولې شول. ولې د ښهٔ مرغه د هیمو په شکل کښې د هغهٔ لاس ته یو ډیر قابل جرنیل راغلے وو. دا هندو اګرچه په ذات یو بنیا وو او په جسمانی لحاظ سره عیب ژن وو. ولې ډیر قابل، زړور او د دور اندیشئ خاوند وو. دا د هیمو د قابلیت او دور اندیشئ نتیجه وه چه هغهٔ د عادل شاه په سلطنت کښې په وقتی طور ټولو باغیانو ته شکستونه ورکړل. ان چه طاقتور مغل هم په ابتداء کښې د هغهٔ مقابلې ته او نهٔ دریدل. او اګره او دهلې ئې د مغلو نه فتح کړل. د پانی پت په میدان کښې هم ئې پښتنو شکست په اتفاقی حادثاتو مبنی وو. او دا نهٔ وه چه ګوندې مغل فوځونه د پښتنو نه زیات مضبوط او یا مغل جرنیلان د هیمو نه زیات قابلان وو.

په ابتداء کښې عادل شاه د هیمو په مرسته د اګرې نه څلویښت کروه لرې د چهپارن په مقام تاج کرلاڼي ته شکست ورکړو. ولې تاج خان د خپلو ملګرو او نورو باغی امیرانو سره یو ځائې شو. او په جنوبي بهار کښې ئې ځان مستحکم کړو. په دغه ورځو کښې د عادل شاه د تخت دیو دعوے دار ابراهیم خان سور سره د عادل شاه یو جرنیل عیسیٰ خان نیازی په جنګونو کښې لګیا وو. په دې جنګونو کښې ابراهیم خان سور کامیاب شو. او په دهلی، اګره او د دې سره په ملحقه علاقو ئې قبضه

اوکړه - دا د عادل شاه د پاره یو لوئ غم وو - چنانچه عادل او هیمو د ابراهیم خان مقابلے ته په ډیرے تادئ روان شول - د ابراهیم فوځونه د هیمو او عادل د مقابلے جوګه نهٔ وو - نو دغه په دوی یو چل اوکړو - هغهٔ عادل شاه ته یو استازے اولیږلو او ورته ئے اووے چه که چرے حسین جلوانی ، بهادر خان سروانی او یو څو نور امیران ماته راشی او هغوی ستا د لوری نه زما سره زما د ژوند د حفاظت وعده اوکړی نو زهٔ به ستا په خدمت کښے حاضر شم او ستا اطاعت به اختیار کړم - دا امیران عادل شاه ورواولیږل - ولے کوم وخت چه دا امیران د ابراهیم خان سره راغلل نو دغه دوی په خپله پره راواړول - او د عادل شاه ئے د جنګ تیاری شروع کړه - دے واقع د عادل شاه حیثیت ډیر کمزورے کړو - او هغه د مایوسئ په حالت کښے چُنار ته لاړ - چه دغه مقام دغهٔ صدرمقام کړے وو - د دے نه پس ابراهیم خان خطبه او سکه په خپل نوم جاری کړه - او د ابراهیم شاه په نامه ئے د خپل حکومت اغاز اوکړو -

په دغه ورځو کښے احمد خان په پنجاب قبضه کړی وه - هغه چه د ابراهیم خان د حالاتو نه خبر شو نو د دهلی طرف ته ئے اونیوله - دغه وخت د تخت سلطنت دے دواړو دعویدارانو د یو بل نه د پښتنو امیرانو په راشوکولو لاس پورے کړو - او په دے لړ کښے هر یو خپلو امیرانو ته انعامونه ورکول شروع کړل - په دے لړ کښے ابراهیم خان سور په خپل حریف احمد خان غالب شو - او هغهٔ دوه سوه امیران په خپله پره راواړول - او د اتیا زره فوځ سره د احمد خان مقابلے ته روان شو - احمد خان سره ایله لس زره فوځ وو -

د اګرے نه لس میله لرے دواړه فوځونه سره مخامخ شول - د احمد خان فوځی طاقت د ابراهیم خان په مقابله کښے ډیر کم وو - نو هغهٔ د صلحے د پاره ابراهیم خان ته یو څو شرطونه پیش کړل - چه هغه دا وو - د دهلی نه په سویل علاقے به د ابراهیم خان سور په سلطنت کښے شامل وی - پنجاب ، ملتان او نورے شمالی علاقے به د احمد خان متعلق وی - که چرے ابراهیم خان د عادل شاه سوری د فراغ په حصول کښے کامیاب شو نو د هغے یو حصه به احمد خان او د هغهٔ امیرانو ته هم ورکوی -

ولے ابراهیم خان خپل فوځی طاقت ته غاوره وو - نو هغهٔ د سلطنت تقسیم ته غاړه کښے نهٔ ښو ده - او جنګ ته تیار شو - چنانچه د ۱۵۵۵ء په آخر کښے د دواړو حریفانو ترمینځه یو خونړے جنګ اوشو - ولے د فوځی طاقت د زیاتوالی باوجود ابراهیم خان بد ترین شکست اوموندهٔ - دغه شان احمد خان د دهلی او اګرے دغم مالک شو - او د ابراهیم په تعاقب کښے د سنبل نه تر اټاوے لاړ - د دے نه پس احمد خان د سکندر شاه په نوم د پنجاب ، ملتان ، دهلی او اګرے بادشاه شو.

او خطبه او سکه ئې په خپل نوم جاري کړه. ولې سکندر شاه د دې فتحې څخه خوشحالي او نه لېدله. ځکه چې هم په دغه ورځو کښې هغه ته په لاهور باندې د همايون د قبضې خبر راغی.

دا د پښتنو د بدبختۍ ورځې وې. سره د دې چې همايون په پنجاب قبضه کړې وه. او د دهلي په لور را روان وو. ولې دغه وخت هم پښتانه د يو بل وينو ته تږي ناست وو. او په خپل مينځ کښې په خونړو جنګونو کښې لګيا وو. چنانچه ابراهيم د شکست نه پس يو نوې فوځ تيار کړو. او د کالپي په لور را روان شو. د ده مقابلې ته عادل شاه خپل جرنيل هيمو د يو لوئې فوځ سره اوليږلو. هيمو چه کالپي ته رااورسيده نو د ابراهيم سره په جنګونو کښې بوخت شو. په دوؤ جنګونو کښې ابراهيم بيا تيښته اوکړه. او بيا د بيانې په قلا کښې محصور شو. هيمو دا قلا محاصره کړه. دا محاصره درې مياشتې اوږده شوه.

په کومو ورځو کښې چه هيمو د بيانې په محاصره کښې مصروف وو. د بنګال ګورنر محمدخان سور د يو لوئې فوځ سره راروان شو. او جونپور ئې قبضه کړو. بيا د کالپي په لور روان شو. عادل شاه د محمد خان سور د دې عظيم فوځ په راتلو ډير وارخطا شو. او هيمو ته ئې خبر اوليږلو. چه په هرقيمت خپل ځان رااورسوه. ځکه چه زه د يو طاقتور دشمن په مقابله کښې بې وسه يم. د مجبورۍ نه هيمو د بيانې محاصره پرې ښودله. او کالپي ته د عادل شاه د مدد په غرض روان شو. د هيمو په تلو ابراهيم خان سور د قلا نه رابهر شو. او د اګرې نه شپږ کروهه لرې ئې د هيمو په فوځونو حمله اوکړه. ولې کامياب نۀ شو. او تيښته ئې اوکړه. او د دې ځائې نه خپل يو ځواني امير حاجي خان سره الور ته لاړ. ولې حاجي خان هغۀ ته پناه ورنۀ کړه. په دې وجه هغۀ د پټنې لار اونيوله.

په ابراهيم باندې د فتح حاصلولو نه پس هيمو د عادل شاه په لور روان شو. او د کالپي نه د نځلس کروهه په فاصله باندې د عادل شاه سره يو ځائې شو. دلته د سيند په بله غاړه محمد خان سور د دوی مقابلې ته تيار وو. د هيمو په راتلو د عادل شاه زړۀ مضبوط او د محمد خان په فوځونو وارخطائي راغله. چنانچه په جنګ کښې محمد خان سور د هيمو د لاسه اووژلې شو. دسمبر (سنه ۱۵۵۵ع) او دغه شان د بنګال علاقه هم د عادل شاه په حکومت کښې په عارضي طور شامله شوه. ولې هم په دغه ورځو کښې د همايون فوځونو په دهلي او اګرې قبضه اوکړه.

همايون چه د شير شاه د لاسه د هند نه په وتلو مجبور شو نو سنده ته لاړ. په دغه ورځو کښې (سنه ۱۵۴۲ع) کښې د امرکوټ (سنده) په مقام د هغۀ يو ځوئې اوشو چه وروستو دغه هلک د اکبراعظم په نامه د هند په تاريخ کښې د لوئې نوم او شهرت خاوند شو. په دغه زمانه

کښې د همایون دریم ورور مرزا عسکری په قندهار کښې د مرزا کامران د لوری نه حاکم وو۔ د دے تنګسیا په وخت کښې همایون د عسکری نه د امداد د حصول په غرض قندهار ته لاړ مګر د امداد په ځائے عسکری په همایون حمله اوکړه۔ او همایون په ډیرے بے سروسامانئ ایله دپنځه څلویښت ملازمانو او خپلے بیګمے سره د عسکری د فوځ نه په تیښته هرات ته لاړ او د هغه ځائے نه ئے د ایران د بادشاه شاه طهماسپ نه د یو سیاسی پناه ګزین په حیثیت په ایران کښې د اوسیدلو خواست اوکړو۔ او د شاه په اجازت په ایرانی حدود کښې داخل شو۔ د همایون ماشوم ځوی اکبر مرزا عسکری د ځان سره قندهار ته بوتلو۔ او د هغه ځائے نه ئے مرزا کامران ته کابل ته اولیږلو۔

د ایران شاه طهماسپ په ابتدا کښې خو د همایون ښه قدر اوکړو۔ او د فوځی امداد طمع ئے ورکړه۔ ولے وروستو ئے د دے په بدل کښې د همایون نه د شیعه مذهب اختیارولو مطالبه او کړه۔ په دے موقع همایون د ډیر اخلاقی جرأت او استقلال نه کار واخست۔ او د مذهب د بدلولو نه ئے قطعی انکار اوکړو۔ د دے په نتیجه کښې د شاه طهماسپ رویه هم د هغه سره بدله شوه۔ ولے د دے بادشاه خور د همایون مرسته اوکړه۔ او خپل ورور ئے د همایون امداد ته اماده کړو۔ چنانچه شاه ایران همایون ته څه فوځی امداد په دے شرط ورکړو چه د قندهار د فتحه کولو نه پس به دا ښار ایرانی حکومت ته حواله کولے شی۔ د دے فوځ په مرسته همایون د مرزا عسکری نه په کال ۱۵۴۵ء کښې قندهار فتح کړو۔ او هم په دغه کال د ډیر کړاؤ نه پس په کابل هم د هغه قبضه راغله۔ دغه وخت همایون د قندهار او کابل دواړو صوبو مالک وو۔ لیکن د هغه دا حکومت څکه د ټینګے نه وو۔ چه کامران لا ژوندے وو۔ او د هغه ارمانونه لا مړاوی شوی نه وو۔

د همایون ژوند د کامران د لاسه په دار وو۔ د ۱۵۴۵ء او ۱۵۵۶ء په مینځ مینځ کښې څو ځله کامران د کابل حکمران شو۔ او څو ځله بیا د همایون د لاسه اوتښتیدو۔ د کامران د ملا تړ خاوند غوریا خیل پښتانه وو۔ کامران د خپل اقتدار په وخت کښې د دے پښتنو مرسته کړی وه۔ او د هغه په کومک غوریا خیلو د پیښور د خوا وشا زمکے د دله زاکو نه نیولے وے۔ په دوئم ځل چه کامران په ۱۵۵۲ء کښې د همایون د لاسه اوتښتیدلو نو هغه غوریا خیلو ته راغے او د هغوی نه ئے د خپل کومک خواست اوکړو۔ غوریه خیل د ده په مرسته اودریدل۔ همایون هم د کامران په تعاقب کښې په جلال آباد کښې مقیم وو۔ کامران د غوریا خیلو نه یو لوئے فوځ مرتب کړو۔ او د همایون په کیمپ ئے د شپے حمله اوکړه۔ په جنګ کښې د همایون یو ورور مرزا هندال د غوریا خیلو د لاسه اووژلے شو۔ ولے دا حمله همایون په ډیر شجاعت اوشړوله۔ د کامران بدے ورځ رانزدے شوے وے۔ سره د دے چه د غوریه خیلو یو مضبوط فوځ د هغه په مرسته ولاړ وو۔ بیا هم هغه اوتښتیدو په

اباسیند پورے وتو او پنجاب ته راغے۔ دغه وخت کښے اسلام شاه په پنجاب کښے وو او د دهغهٔ پناه ئے اونیوله۔ لیکن کامران د اسلام شاه د رویے نه دومره په خوف کښے پرے وت چه شپه په شپه د ښځو په جامه کښے بیالاهور نه اوتښتیدهٔ۔ او دګکړانو سردار ادهم خان ته ورغلو.

ګکړ په حیثیت د قام د پښتنو د سلطنت مخالف وو۔ د ادهم خان دا صلاح وه چه د اسلام شاه خلاف د همایون مرسته اوکومک حاصل کړی۔ په دے بنا هغهٔ کامران ته سترګے خړے کړے۔ کامران چه کومه خطره د اسلام شاه نه کوله هغه ورله د ادهم خان د لاسه په اعتبار کښے پیښه شوه۔ ادهم خان هغه نظربند کړو۔ مدعا ئے دا وه چه د اسلام شاه په مقابله کښے د همایون امداد او خوشنودی حاصله کړی۔

ادهم خان د کامران د نظربند کولو نه پس همایون ته د دے خبرے د اطلاع په غرض خپل یو استاذے اولیږلو۔ کامران ته چه خپل انجام معلوم شو نو هغهٔ هم د ادهم خان د استاذی په لاس خپله یو عرضی همایون ته اولیږله۔ چه په هغے کښے ئے د خپلو قصورونو اعتراف او د معافئ خواست کړے وو۔ د همایون په زړهٔ کښے به د سلطنت هند د حصول تلوسه څه رنګ سړیدله۔ په دے لړکښے هغه په خپلو کوششونو کښے لګیا وو۔ د خیبر لاره هغهٔ د خپل تګ راتګ د پاره غیر محفوظه ګڼله۔ ځکه چه د دے لارے په غاړه آباد قبائیل د کامران ملګری وو۔ دوئمه لار د کړے او بنګښو وه۔ او د دے لارے د ازادولو په غرض همایون په دغه ورځو کښے د بنګښو سره په جنګ کښے مصروف وو چه د ادهم خان استاذے د درسمند په مقام د هغهٔ په خدمت کښے حاضر شو۔ او همایون چه د کامران د ګرفتارئ نه خبر شو نو سمدستی د کامران د ګرفتارولو په غرض د خپل فوځ سره په اباسیند راپورے وتو۔ او هغه کامران چه همایون ئے ترپوزے راوستلے وو۔ یوځل بیا د همایون په قبضه کښے وو۔ همایون دا ځل هم د کامران د معاف کولو اراده لرله۔ ولے امیرانو ئے د دے خبرے سخته مخالفت اوکړو همایون ته هم دا خبره ښه معلومه وه چه د کامران په موجودګئ کښے هغه خپلے تلوسے نهٔ شی پوره کولے۔ بیا هم هغه د کامران د وژلو په ځائے د هغهٔ د ړندولو فیصله اوکړه۔ د سترګو د اړندول د ظلم او وحشت یو ډیر ناوړه کار وو۔ چه په مغلو کښے جاری وو۔ او بیا وروستو پښتنو هم د دوی نه زده کړے وو۔

کامران ته هم د خپل قسمت فیصله معلومه شوه۔ په مقرره ورځ یو جراح او دوه ځلور امیران د هغهٔ خیمے ته لاړل۔ کامران ئے په خیمه کښے را واچولو۔ پښے ئے ورله اوتړلے۔ دوه کسه ئے په سینه سواره شول۔ او بیائے په او رکښے سرهٔ کړی ګرم سیخونه د هغهٔ په سترګو کښے ځو ځله او وهل. د دے وحشت ناکے کاروایئ په دوران کښے کامران د ډیر استقلال او جرأت مظاهره اوکړه او اُف

وفت
قادرے هم او نۀ کړو - ولے کوم چه په دے زخمی سترګو کښے ورله د تروؤ لیمبوانو اوبۀ ځوړے کړے نو دا سوے هغۀ برداشت نۀ کړے شو - او دومره ئے اووئیل "ظالمانو! نور راسره څه کوی- ددے نه خو زما مرګ ښۀ وو- ددے نه پس کامران د یو څو ملګرو سره هم د هغۀ په خواهش مکے معظمې ته اولیږلے شو - او دغه شان همایون دخپل یو خوفناک دښمن نه بے غمه شو-کامران یو ښۀ شاعر او عالم انسان وو - ولے حد نه زیات حریص ، بدګمانه او ډیر مغروره بنیادم وو- د دے عیبونو له کبله نۀ هغۀ خپل ژوند په آرام تیر کړو - او نۀ ئے همایون په قلار پرے ښود

د همایون دځ نه چه د کامران غوندے دښمن لرے شو نو د هغۀ تلوسے بیا تازه شوے. او د هند د فتحے آرزوګانے په زړه کښے رااولړزیدله - ولے دغه وخت کښے لا اسلام شاه ژوندے وو - او د هغۀ په وخت کښے په هند حمله کول اسان نۀ وو - مجبوراً همایون بیا په اباسین راپورے وتو او پیښور ته راغے - دلته کښے ئے د هغه قلا مرمت اوکړو - چه اوس په "بالا حصار" مشهوره ده - دا قلا هغۀ په خپل خیال کښے د هندوستان د حملے له پاره خپل وړومبے پړاؤ مقرر کړے وو - همایون دلته د حفاظت او شاید چه د پیښور د قبضې په غرض د سکندر خان قازق په ماتحتی کښے څه لږ شان فوځ هم پریښود ، او په خپله د خیبر په لار کابل ته روان شو- ولے د همایون د تلو نه لږ ورځے پس یوسف زو د خپل مشر ملک خان ګجو په ماتحتی کښے په پیښور حمله اوکړه - او د همایون فوځ ئے محصور کړو - د پښتنو دا حمله ډیره زورداره او طوفانی وه - ولے دوی د قلا په وهلو کښے څکه کامیاب نۀ شول - چه د دوی سره د قلا ړنړولو څه سامان نۀ وو - مغل فوځونو دا قبائیلی حمله په ډیر شواخون اوشپوله .

همایون په کابل کښے وو چه د هغۀ طاقتور دښمن اسلام شاه په اکتوبر ۱۵۵۳ء کښے وفات شو او د هغۀ په وفات د همایون امیدونه بیا تازه شول - چنانچه هغۀ پنځلس زره فوځ جمع کړو - او په نومبر کال ۱۵۵۴ء کښے د کابل نه پیښور ته راغے - او چه په اباسین پورے شو نو بیرم خان ئے د خپلو فوځونو سالار او ټاکلو - په یو لور همایون په هند حمله اوکړه - او بل لور د شیرشاه په کورنۍ کښے خونړی جنګونه روان وو - او د خپل سلطنت د شمالِ مغربی سرحد د حفاظت نه غافله وو.

لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی - احمد خان (سکندر شاه) چه د ابراهیم خان او عادل شاه په مقابله کښے کامیاب شو نو هغۀ دا غوره اوګڼله - چه د ټولو پښتنو مرسته او کومک حاصل کړی - په دے غرض هغۀ یو لویه جرګه رااوبلله او د پښتنو امیرانو او مشرانو په مخکښے ئے یو تقریر اوکړو - هغۀ په خپل تقریر کښے دا اووے :-

" بهلول لودی او شیرشاه سوری که په هندوستان کښے حکومتونه قائم کړی وو نو هغوی د

ټولو پښتنو مرسته او تعاون حاصل کړے وو - ولے د هغوی جانشینو ابراهیم لودی او عادل شاه سوری د دوی برخلاف طریقے اختیار کړے - او د سلطنت جرړے ئے پریکړے - نن د پښتنو توره په خپلو وینو سره دی - د همایون غونډے دشمن د دوی په داؤ کښے ناست دے - او که چرے دا حالت هم دغه شان قائم پاتے شی نو یقیناً نن دے که سبا دے دا باغ د زرغون شاه دے؟ د راتلونکی دښمن د دفعیے د پاره د پښتنو د پاره دا بهتره ده چه دوی داسے سرے بادشاه کړی چه دوی ټول د هغه د جنډے لاندے یو ځله، یو زړه او یو تن شی - اوس که چرے ما تاسو د دے کار د پاره موزون ګڼئ، نو ما بادشاه کړئ - او که بل څوک موضوع وی نو زهٔ به اول سړے یم چه د هغه په مخکښے به زنګلم - ولے په دے وخت کښے موږ ته اتفاق پکار دے -" د دے تقریر نه پس ټولو پښتنو هغه په اتفاق خپل بادشاه اومنلو - او د هغه د مرستے او وفادارئ قسمونه ئے اوکړل - ولے افسوس دے چه کوم عاقلانه خیالات سکندر شاه په اوله کښے ظاهر کړی وو - نو نهٔ خو هغه په خپله په هغے قائم پاتے شو - او نهٔ نورو پښتنو امیرانو د خپلو قسمونو پابندی اوکړه - په دغه وخت کښے د سکندر شاه په قبضه کښے د ګنګا سیند نه واخلے د جهلم سیند تر غاړے پورے علاقه وه - او تاتارخان نومے یو امیر د هغهٔ د لوری نه په ،، رهتاس ،، کښے مقیم وو -

تاتارخان د همایون څه معمولی شان مقابله اوکړه - ولے خوندے ئے او نهٔ کړو - او تیښته ئے اوکړه - په ۲۴ر فروری ۱۵۵۵ء د یو معمولی جنګ نه پس په لاهور هم د همایون قبضه راغله - پښتانهٔ د دے ځائے نه هم اوتښتیدل - د مغلو وېره په پښتنو دومره غالبه شوه چه د دیبال پور په قلا کښے مقیم جرنیلان شهباز خان او ناصرخان هم په ډیر بده رنګه اوتښتیدل -

دغه وخت کښے سکندر شاه سور د ابراهیم خان په تعاقب کښے په اتاوه کښے وهٔ - چه هغهٔ په پنجاب باندے د همایون د قبضے نه خبر شو - چنانچه هغهٔ د تاتارخان، ناصرخان او هیبت خان په ماتحتئ کښے دیرش زره فوځ د مغلو مقابلے ته رااولیږلو - په ۱۲ مئ ۱۵۵۵ء د ماچهی واړے په مقام د مغلو او پښتنو فوځونو مقابله اوشوه - چه په هغے کښے پښتنو شکست اوموند -

د ماچهی واړے د شکست په خبر سکندر شاه په خپله د پنجاب په لور د اتیا زره فوځ سره راروان شو - په ۲۲ جون ۱۵۵۵ء د سرهند په مقام د مغلو او پښتنو ترمینځه بیا خوفناکه مقابله اوشوه - اګر چه په شمیر کښے پښتانهٔ د مغلو په نسبت یو په څلور زیات وو - او په جنګ کښے هم دوی څه تقصیر نهٔ وو کړے - بیا هم شکست د دوی په نصیب شو - سکندر شاه د شوالک غرونو ته اوتښتید و - په ۲۰ر جولائی ۱۵۵۵ء د پنځلس کاله سرګردانئ او جلاوطنئ نه پس همایون د دهلی په دارالخلافه کښے بیا داخل شو - د دے نه پس مغلو آګره او د دے سره ملحقه علاقے هم اونیولے - او بیا نه هم د دوی

په قبضه کښې راغله -

ولې همایون د خپل سلطنت خوشحالۍ ډېره موده اونۀ لیدله - او هغه په ۲۸ جنوري ۱۵۵۶ء کښې وفات[1] شو - دغه وخت د هغۀ ځوئ اکبر په پنجاب کښې وو - په ۱۴ فروري ۱۵۵۶ء د خپل سرپرست بیرم خان په مشوره د کلا نور په مقام د اکبر د تخت نشینۍ دستوره اوشوه - او هغه د هند بادشاه شو -

د همایون مرګ او د کم عمر اکبر تخت نشینۍ د عادل شاه امیدونه هم تاند کړل او هغه ئې د شمالي هند بادشاهۍ کټلو ته بیا لیوالہ کړو - چنانچه هغه د هیمو په ماتحتۍ کښې پنځوس زره سوار فوځ او پنځه سوه هاتیان د مغلو مقابلې ته اولیږل - ولې هغه په خپله په چنار کښې پاتې شو - ځکه چه د هغۀ په خپلو خلقو کښې دغه وخت رقابتونه او بغضونه په شدت سره جاري وو -

هیمو د دې عظیم فوځ سره په ډېرې تادۍ د مغلو د ایستلو په اراده د چنار نه راروان شو - او آګرې ته د رارسیدو سره سم په مغلو د هغۀ سهم داسې غالب شو - چه د آګرې او کالپي مغل ګورنر سکندر خان اوزبک د آګرې نه دهلي ته اوتښتیدو - دغه شان د اتاوې عبد الله خان ازبک، دیانې ګورنر حیدر خان او د نورو علاقو مغل حاکمان ټول په تیښته دهلي ته لاړل - په دې دوران د سنبل ګورنر علي قلي خان ته هم د هیمو د دې عظیم فوځ خبر ورکړې شو - او هغه دهلي ته او تلې شو -

چه هیمو د دهلي خوا او شا ته نزدې شو نو دغه وخت د دهلي ګورنر تردي بیګ او نورو مغل جرنیلانو د هیمو د مقابلې تیاریا شروع کړه - په ۷ اکتوبر ۱۵۵۶ء د تغلق آباد په خوا کښې د مغلو او د هیمو د فوځونو مقابله اوشوه - دغه وخت هم د هیمو شهرت او د هغۀ عظیم فوځ په مغل فوځونو خپل سهم کښېنولو - چنانچه د مغل فوځ اکثر جرنیلان او افسران د جنګ نۀ کولو په حق کښې وو - ولې ځنې په کښې داسې هم وو چه معنوي سر ورکولو ته تیار وو -

په ابتدائۍ حمله کښې د مغلو د ښي اړخ فوځونو د ګس اړخ فوځونه کښېمنډل - ولې ډېر زر هیمو د مغلو په مینځ فوځ حمله اوکړه - او مغل کماندار تردي بیګ ئې په تیښته مجبور کړو - د تردي بیګ په تیښته د ټول مغل فوځ زړونه پرې وتل - او په بده رنګه ئې تیښته اوکړه - د بریالي هیمو په لاس د مغلو نه ډېر سازوسامان راغې - او دغه شان په دهلي هم د هیمو قبضه اوشوه -

د ځنې مؤرخینو دا خیال دې چه د دهلي فتح او د مغلو نه د بې شماره مال غنیمت په حصول

---

[1] تاریخ وفات ئې «اے واے بادشاه ازبام افتاد» نه اوځي -

هیمو د عادل شاه نه د بغاوت اراده اوکړه. او د بکرماجیت خطاب ئې اختیار کړو. خپل پښتانه امیران ئې په مال و دولت د ځان نه خوشحال کړل. او هغوی ئې دې ته اماده کړل چه هغوی دے د بادشاه په ډول اومني. او د "هیمو شاه" په نوم دِ د هغهٔ په مخکښې اداب په ځائے راوړي. د دے مؤرخینو دا قیاس د تاریخ داؤدي د مؤلف احمد یادګار په وینا مبني دے. احمد یادګار وائي چه هر کله هیمو په مغلو بریالے شو. او د مغلو نه د هغهٔ په لاس بے شماره سازوسامان راغے نو د هغهٔ په دماغ کښې باغیانه خیالات راغلل. هغهٔ بے د اسونو او هاتیانو نه نور سازو سامان پښتنو امیرانو ته ورکړو. او دوی ئې په خپل تار راواړول. او د خپل ځان د پاره ئې شاهي شامیانه اودرولو. او د خپلے نامے سکے ئې جاري کړے. او په بل لورے ئې عادل شاه ته اولیکل چه د بادشاه د خوش نصیبۍ په برکت د هغهٔ غلام (هیمو) په مغلو شانداره فتحه حاصله کړه. ولے زهٔ اوریدم چه د همایون ځوے د یو لوئے فوځ سره په دهلي باندے د حملے اراده لري. نو په دے غرض ما د مغلو نه نیولي اسونه او هاتیان د ځان سره ایسار کړل. چه د مغلو په مقابله کښې ترنه کار واخلم. د هیمو په دے خط د عادل شاه تسلي اوشوه. او د هیمو په حقله ئې څه بدګماني پیدا نهٔ شوه.

اګر چه مغل مؤرخینو هم د احمد یادګار د دے بیان تائید کړے دے. ولے په حقیقت کښې دا بیان د واقعاتو په رڼا کښې درست نهٔ معلومیږي. اول خو د هیمو د نامے مسکوکات تر اوسه نهٔ دي موندلي شوي. که چرے هغهٔ واقعي په خپل نوم سکه جاري کړے وے. نو چرته خو به موندلے شوے وے. بل دا خبره هم د فکرور ده چه اګر چه هیمو مغلو ته شکست ورکړے وو. ولے دا شکست د مغلو انجام نهٔ وو. نو د هیمو غوندے یو هوښیار او مدبر بنیادم به په داسے غیریقیني حالاتو کښې خپل شهرت او وفادارۍ ته نقصان رسولو ته تیار نهٔ وو. د دے نه علاوه دے حقیقت ته هم کتل پکار دي چه پښتانهٔ په خپلے مرضۍ او رضا صلاح د دومره بے شماره پښتنو امیرانو او د پښتنو د بادشاه په موجودګۍ کښې هیچرے هم د یو هندو په بادشاهۍ رضا کیدے نهٔ شو. د هیمو سره چه کوم پښتانهٔ امیران وو هغه ټول د عادل شاه مرستیال او د هغهٔ پره دار وو. بله دا چه پښتانهٔ دے بے عزتۍ ته هم نهٔ شو تیار یدے چه هغوی دِ د یو بادشاه په ډول هیمو ته سلام اوکړي. ممکنه ده چه که واقعي هیمو داسے کړے وے نو څینے پښتانهٔ به ئې د مال و دولت په لالچ او د انعام و اکرام په طمع په خپله پره راواړولي وو. ولے دا قطعي د منلو نهٔ ده. چه هغهٔ پښتانهٔ امیران چه د خپلے عزت او خود دارۍ د پاره د مغلو بادشاهانو سره خونړي جنګونو ته تیار شوي وو. هغوی به د هیمو د بادشاهۍ بے عزتي قبوله کړے وے. کومو پښتنو چه د ابراهیم لودي او اسلام شاه سوري د لوری نه په خپلو قانونو د هغهٔ عائد کرده پابندۍ په دے وجه نهٔ منلے چه

د دې په وجه ځوی په خیال کښې د دوی عزت نفس مجروح کیدو. د هغوی اخلاق او ورو ته
ترپوران د هیمو شاه په مخکښې کورنش په ځای کولو ته تیاریدل ناممکن وو. په دې بنا د مغلو
مؤرخینو دا وینا د هیمو د غیر معمولي قابلیت سره د هغوی د حسد غمازی کوی.

په دهلی باندې چه د هیمو قبضه راغله او اکبر د دې نه خبر شو نو هغه د سکندر شاه
سوری د مقابلې په غرض حیدر خان نومې یو امیر پرې ښود او په خپله د بیرم خان په سرپرستۍ
کښې د جلندر نه د دهلی په لور راروان شو. د سرهند په مقام شکست خورده جرنیل تردی بیگ
او نورمغل امیران د اکبر په خدمت کښې حاضر شول. په دې موقع د بیرم خان له خوا په تردی
بیگ د بزدلۍ الزام اولګولې شو. او هغه په دې جرم کښې اووژلې شو. اګر چه په ظاهره کښې
د دې مقصد دا وو چه د بزدل جرنیلانو سزا به مرګ وی. فرشته هم دا وائی چه دا اقدام د
سلطنت د مفادو په خاطر اخستې شوې وو. ځکه چه که داسې نه وې شوې نو مغل فوځ داسې
ویرې اخستې وو چه د شیرشاه د زمانې واقعات به بیا تازه شوی وو. ولې حقیقت داسې نه دې
د تردی بیگ قتل د سلطنت د مفادو په خاطر نه بلکه بیرام خان د خپل اقتدار د لارې د صفا
کولو په غرض کړې وو. د تردی بیگ او بیرام خان ترمینځه د اقتدار جنګ جاری وو. او په دې
جنګ کښې تردی بیگ د بیرام خان په مقابله کښې کامیاب وو. علاوه د دې نه دې دوارو سره دوو
متلقو قامونو یعنې دایرانیانو او تورانیانو امیرانو قیادت کولو. د ایرانی امیرانو قیادت د بیرام خان
په لاس کښې وو. او د تورانیانو قیادت واګې د تردی بیگ په لاس کښې وې. وروستو دې پارټۍ
بازۍ د شیعه سُنی رنګ اختیار کړو. تورانیان سُنی مذهب او ایرانیان شیعه مذهب وو. او د دوی
په مینځ کښې د اقتدار جنګ جاری وو. چنانچه بیرم خان د خپل حریف تردی بیگ فیصله د سلطنت د
مفادو په پرده کښې اوکړه. او ځان ته ئې لاره صفا کړه.

د تردی بیگ د قتل نه پس بیرام خان د دهلی او اګرې د راګرزولو تابیا شروع کړه. هغه د
علی قلی خان په ماتحتۍ کښې د لسو زرو یو فوځ وړاندې اولیږلو. او په خپله د اکبر په ملګرتیا کښې
د باقی فوځ سره په صف پسې روان شو. په بل لور هیمو هم مقابلې ته تیار وو. هغهٔ د مغلو د پیش
قدمۍ په خاطر د خپل فوځ یوحصه وړاندې لیږلې وه. ولې د هیمو دې هراول فوځ د مغل فوځ
نه شکست اوموندهٔ. د دې واقع د هیمو په فوځ کښې بددلی او مایوسی شان پیدا کړه. بیا هم هیمو
د ډیرې مستعدۍ نه کار واخست. خپل هر یو امیر ته ئې یو یو هاتی په انعام کښې ورکړو. او د فتح
په صورت کښې د خپلو سپاهیانو او امیرانو سره د ډیرو انعامونو وعدې اوکړې. د دیرش زره لښکر
او د پنځلس سوه هاتیانو سره هیمو د پانی پت میدان ته راغلو. او د مغل فوځ د هراول دستو

سره مخامخ شو - د مغل مؤرخينو مطابق دا فوځ په شمیرکښې لس زره وو- په ۵، نومبر ۱۵۵۶ء کښې د پانی پت په میدان کښې د پښتنو او مغلو يوځل بيا د هندوستان د سلطنت د پاره جنګ اوشو ولې دا ځل د پښتنو د فوځ مشر هيمو وو - او اګرچه ډير قابل وو- ولې د پښتنو په نظرکښې بيا هم يو هندو وو۔

د هيمو د ښی اړخ فوځ کماندار شادی خان کاکړ وو- دا کماندار د جنګ په ابتدا کښې د مغل فوځ د لاسه اووژلے شو- ولې هيمو په خپل جنګی هاتی سور په ډيره بهادری په مغل فوځ حمله اوکړه -او دغوی د کس اړخ فوځ ئے اولړزولو- د دے نه پس ئے د مغل فوځ په قلب حمله او کړه - ولې مغل تيراندازو په هيمو د غشو باران اووروولو- او د بده مرغه هيمو په يو غشی په سترګه داسې بد اولګيدۀ چه غشے د سر نه پورے اووتلو- د دے خوفناک ګذار په وجه هيمو په خپله هوده کښې بے هوشه پريوت - او د هغۀ هاتی د ميدان نه منډے کړے- د هيمو د هاتی په تيښته پښتنو هم د هغۀ د تيښتے ګمان اوکړو- او هغوی هم اوتښتيدل- د دغه وخت د هيمو هاتی ځنې مغلو راګيرکړو او هغه ئے د اکبر او بيرم خان په وړاندے اودرولو- د تحقيق نه پس معلومه شوه چه هيمو په هوده کښې بے هوشه پروت دے- د دغه وخت بيرام خان اکبر ته د هيمو د وژلو اووے ولې اکبر ديو شکست خورده او زخمی دشمن د وژلو نه انکار اوکړو- او بيرام خان هغه په خپل لاس اووژلو -

د هيمو مرګ د عادل شاه د پاره د بے شميره مصيبتونو پيش خيمه شوه- دا د هيمو د همت شجاعت او قابليت نتيجه وه چه د دومره دشمنانو په مقابله کښې د عادل شاه شان او حيثيت ئے قائم ساتلے وو- د هيمو په مرګ د دے رباړی بادشاه ټول اميدونه مراوی شو-

# د پانی پت د دویم جنګ نه پس

د پانی پت د دویم جنګ (۱۵۵۶ء) په نتیجه کښې اګرچه د پښتنو د لاسه د پنجاب نه تر اګره پورې علاقه اووتله - بیا هم د هندوستان یوه لوه برخه د دوی په قبضه کښې وه - د عادل شاه یو امیر رکن خان لوهاني په سنبل قابض وو - حاجي خان په الور او میوات حکمران وو - د لکهنؤ او ګوالیار نه واخلې د بنګال تر سرحد پورې علاقه د عادل شاه سوری په قبضه کښې وه - باز بهادر په مالوه کښې او محمد خان سور په بنګال کښې حکومت کولو - په دې ډول د پښتنو په قبضه کښې چه کومه علاقه وه هغه د مغلو د مقبوضه علاقې نه دغه وخت هم یو په دوه زیاته وه - د مغلو په نسبت د پښتنو مالی ذرائع او فوځي طاقت هم زیات وو - د جنګ په معاملاتو کښې هم پښتانهٔ د مغلو په نسبت لاندې نهٔ وو. اوکه چرې دوی په دې موقع د مغلو برخلاف اتحاد کړې وې نو د دوی متحده کوششونو د پانی پت د عظیم نقصان تلافي کولے شو۔

ولے د بده مرغه د شیرشاه د وفات نه پس په پښتنو کښې د یو مقتدر شخصیت خاوند مشر څوک داسې نهٔ وو پاتې شوې چه هغهٔ ټول پښتانهٔ په یو مرکز او مقصد راغونډ کړې وې - د اسلام شاه نه پس په پښتنو امیرانو کښې صرف تاج کرلاڼي یو داسې امیر وو چه د هغهٔ د سیاسی تدبر او علم و فضل نه دا توقع کیدې شوه چه هغه به د پښتنو دا بیړۍ د ګرداب نه اوباسی - ولے د عادل شاه ناوړه اقدام دا ارزو هم پوره نهٔ کړه - د پانی پت د جنګ نه پس چه د کومو پښتنو امیرانو په لاس کښې د اقتدار واګې وې په هغو کښې هم داسې نهٔ وو چه د پښتون قام وسیع مفادو ته ئې په خپلو ذاتی مفادو ترجیح ورکړې وې - دا پښتانهٔ امیران د پانی پت د عظیم صدمې نه پس هم په خپلو ذاتی رقابتونو کښې بوخت وو - او د مغلو په نسبت ئې خپل پښتانهٔ زیات دښمنان ګڼل او د یو بل نه د اقتدار په تروړلو کښې لګیا وو - او دغه شان ئې خپل قبرونه ته په خپله اوکنستلو۔

اګرچه یو څو پښتنو امیرانو په انفرادی حیثیت کښې د مغلو برخلاف جنګ جاری اوساتلو - ولے دغه وخت هم د دوی نورو عزیزانو د خاموش تماشګیرو حیثیت اختیار کړې وو - او په دې طمع ناست وو - چه کله به دوی د مغلو د لاسه اووهلے شي - او د دوی په زوال کښې به موږ ته څه

څه ذاتي فائده په لاس راشي -

لکه چه وړاندے وئيلے شوی دی د پاني پت د جنګ نه اول محمد خان سور د عادل شاه د جرنيل هيمو دلاسه په جنګ کښے وژلے شوے و- د محمد خان د وفات نه پس د هغهٔ ځوئے بهادر خان د بنګال حکمران وو- په کومو ورځو کښے چه هيمو د پاني پت په ميدان کښے د مغلو سره جنګيده - بهادر خان دا موقع د خپل پلار د بدل اخستو د پاره بهترينه اوګنړله - او ديو لوئے فوځ سره د عادل شاه نه د بدل اخستلو په غرض رّاروان شو- په اپريل ۱۵۵۷ع کښے د سراج ګړه سره نږدے د عادل شاه سوری او بهادر خان ترمينځه يو ډير سخت جنګ اوشو چه په هغې کښے عادل شاه سوری اووژلے شو - او دا د اکبر خوش قسمتي وه چه د هغهٔ دشمنان (پښتانهٔ) په خپلو کښے د يو بل په غوښو اخته وو- او د غه شان ئے په شمالي هند کښے د هغهٔ اقتدار ته لاره هواروله. د عادل شاه سوری په مرګ د شير شاه د کورنۍ بادشاهي ختمه شوه- د دهٔ د حکومت زمانه چه په اصل کښے د پښتنو د بدبختۍ زمانه وه- تقريبًا درے نيم کاله وه-

لکه چه وړاندے وئيلی شوی دی په کومو ورځو کښے چه هيمو په آګره او دهلي قبضه اوکړه نو اکبر او بيرام خان د هيمو د مقابلے په نيت د دهلي په لور رّاروان شول - او د سکندر شاه سوری مقابلے ته ئے خپل يو امير پرے ښودلو- سکندر سوری د مغلو برخلاف جنګ جاري ساتلے وو- او په مارچ ۱۵۵۷ع کښے ئے مغل فوځ ته شکست ورکړه - اکبر چه د دے شکست نه خبر شو نو د بيرام خان په ملګرتيا کښے د سکندر مقابلے ته په ډيرے تادۍ اورسيد د اکبر په راتلو سکندر سوری بيا د شوالک غرونو ته اوختلو- ولے اکبر د علاقے مقامي زميندارانو په خپل حمايت اماده کړل - او د دے په نتيجه کښے سکندر سوری د مان کوټ په قلا کښے چه په دغه زمانه کښے ناقابل تسخير ګڼلے شوه- او اسلام شاه تعمير کړی وه- په پناه اخستلو مجبور شو - اکبر په ډيرے سختۍ د قلا محاصره شروع کړه - په دغه ورځو کښے سکندر شاه سوری د عادل د مرګ نه هم خبر شو - او اګرچه د پښتنو د دے بدبختۍ باعث هم عادل شاه سوری وو- بيا هم د هغهٔ په مرګ د پښتنو اميرانو زړونه پريوتل -

چنانچه سکندر سوری هم د اکبر سره صلح اوکړه - په ۱۲ر جولائي ۱۵۵۷ع هغهٔ وسله کيښودله - د اکبر د لوری نه هغهٔ ته په بنګال کښے د جاګير ورکولو وعده اوشوه- او د سکندر شاه د وفادارۍ د ضمانت په دول د هغهٔ ځوئے عبدالرحمان سوری او د سکندر شاه يو بااعتماده امير غازي خان د اکبر ملازمت اختيار کړو -

په دے دول حاجي خان هم د مغلو څه ناکامياب مقابله اوکړه - دا امير د هيمو په ملګرتيا

کښې د پانې پت په جنګ کښې د مغلو برخلاف جنګېدلے وو ۔ او د شکست نه پس خپل جاګیر (الور) ته تلے وو ۔ د پانې پت د شکست نه پس د هیمو پلار هم د خپل سازو سامان او ملازمانو سره د دے حاجي خان سره پناه اخستې وه ۔ اکبر د دهٔ برخلاف هم یو فوځ اولیږلو ۔ ولے حاجي خان هېڅ د مغلو مقابله او نهٔ کړه ۔ او اجمیر ته اوتښتېدو ۔ دغه شان الور او میوات دواړه علاقے د مغلو په قبضه کښې راغلے او د هیمو پلار هم د مغلو په لاس کښې بندیوان شو ۔ د حاجي خان په تعاقب کښې مغل فوځونه اجمیر ته هم لاړل ۔ ولے حاجي خان دلته هم مقابله او نهٔ کړه ۔ او د اجمیر نه ګجرات ته اوتښتېدهٔ ۔ او هلته د نورو پښتنو سره یوځائے شو ۔ دغه شان په سنه ۱۵۵۷ کښې د مغل جرنیل خان زمان په ماتحتۍ کښې د رکن خان لوهاني برخلاف په سنبل حمله اوکړے شوه ۔ رکن خان هم تېښته اوکړه ۔ او په سنبل هم د مغلو قبضه راغله ۔ دغه شان د سنبل نه تر لکهنئو پورے په ټوله علاقه د مغلو حکومت قائم شو ۔

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی چه د هیمو د لاسه ابراهیم خان سور پټنے ته تښتېدلے وو ۔ د عادل شاه سوری د مرګ نه پس هغه بیا د ګنګا نه رااوتو او په جونپور ئے قبضه اوکړه ۔ په سنه ۱۵۵۸ کښې خان زمان د ابراهیم خان برخلاف فوځ کشي اوکړه ۔ د مغل فوځ په رارسېدو ابراهیم خان د جونپور نه اړیسے ته اوتښتېد ۔ او په جونپور هم د مغلو قبضه اوشوه ۔ لیکن ډېر زر د بنګال نه بهادر خان سوری په جونپور حمله اوکړه ۔ ولے د خان زمان خان په مقابله کښې دے هم ټینګ نهٔ شو او بنګال ته په تېښته لاړ ۔

ولے د دے شکستونو باوجود پښتنو امیرانو په انفرادی حیثیت کښې د مغلو برخلاف جنګونه جاری ساتلی وو ۔ چنانچه د عادل شاه د مرګ نه پس د هغهٔ امیرانو د هغهٔ ځوئے شیر خان د شیرشاه دویم په نامه په چُنار کښې بادشاه کړے وو ۔ په کال سنه ۱۵۶۱ کښې د شیر شاه دوئم په ماتحتۍ کښې پښتنو د خان زمان مغل ګورنر برخلاف فوځ کشي اوکړه ۔ د جونپور سره نژدے د مغلو او پښتنو تر مینځه جنګ اوشو ۔ په ابتداء کښې مغلو تېښته اوکړه ۔ ولے پښتانهٔ سمدستي په لوټ کښې لګیا شو ۔ مغلو د پښتنو د دے بے پروائۍ نه فائده واخسته ۔ په پښتنو ئے بیا چپاؤ اوکړو ۔ او د دوی فتحه ئے په ماتېدلو بدله کړه ۔ پښتانهٔ په ډېره بده رنګه طریقه اوتښتېدل ۔ د دے شکست نه پس شیرشاه دویم د مغلو برخلاف هیڅ اقدام او نهٔ کړو ۔ تم په دغه ورځو کښې د عادل شاه سوری یو امیر « فتو خان مسند عالي » د چُنار مضبوطه قلا په رضا صلاح مغل ګورنر ته حواله کړه ۔ او په خپله ئے د مغل حکومت ملازمت اختیار کړو ۔

په کومو ورځو کښې چه د عادل شاه سوری امیرانو د هغهٔ ځوئے شیر خان په چُنار کښې بادشاه

کړے وو۔ هم په دغه ورځو کښے د اسلام شاه د کورنۍ مرستیالو د هغهٔ ځوی اواز خان په ، رهتاس ، کښے خپل بادشاه تاکلے وو۔ د خان زمان د لاسه چه شیر شاه دویم شکست اوموندلو د دے نه پس اواز خان د یولوئے فوځ سره په جونپور حمله اوکړه۔ دا ځل هم پښتنو مغل فوځونو ته شکست ورکړو۔ لیکن دوی د مکملے فتح نه اول په لوټ کښے تکیا شول۔ په دغه وخت کښے د پښتنو د بد قسمتۍ نه یوه واقعه اوشوه چه د هغې په وجه پښتنو ته لوئے نقصان اورسید۔ او د دوی فتح په بهترین شکست کښے بدله شوه۔ واقعه دا وه چه د مغلو یو مست هاتی یوځو پښتنو سپاهیانو اونیولو۔او د هغهٔ زنځیرونه ئے پرانستل او په هغهٔ باندې ئے د سوریدو کوشش شروع کړو۔ په دے کښے هاتی او تر هیدو۔ او په دوی ئے حمله اوکړه۔ په دے منډو تړو کښے هغو پښتنو چه په لوټ مار کښے اخته وو دا گمان اوکړو چه گوندے مغلو بیا حمله اوکړه هر څه ئې پرے ښودل۔ او په ډیرے وارخطائۍ کښے اوتښتیدل۔ او ډیر د مغلو د لاسه اووژلے شول۔ د مغلو دا دیستلو په لړکښے دا د پښتنو اخری منظم کوشش وو۔ د دے نه پس دوی د دهلی د سلطنت خیال پرے ښود۔ او په کومه کومه علاقه چه دوی قابضان وو د هغې د ټینګولو او مضبوطولو په تابیا کښے تکیا شول۔

**د مالوے سقوط:۔** د اسلام شاه په وخت کښے د مالوے گورنر شجاعت خان نومے یو کرلانی پښتون وو۔ د دهٔ اصلی نامه اسماعیل خان وه۔ ولے د شیر شاه د حصول سلطنت په جنګونو کښے د دهٔ د لاسه د بنګالے بادشاه وژلے شوے وو۔ نو د دے مړانے په عوض کښے شیر شاه دهٔ له د شجاعت خان خطاب ورکړے وو۔ د عادل شاه سوری په وخت کښے دغه شجاعت خان د مالوے گورنر وو۔ چه په سلطنت کښے طوائف الملوکی جوړه شوه نو شجاعت خان هم د خپلے خود مختارۍ اعلان اوکړو۔ او بیا په خپل طبعی مرګ مړشو۔ او د هغهٔ په ځائے باز بهادر د مالوے حکمران شو۔ دهٔ هم د خپلے خود مختارۍ اعلان اوکړو۔ او خطبه او سکه ئے په خپل نوم جاری کړه۔

باز بهادر د خپل حکومت په آغاز کښے د ملک د انتظام او استحکام په لور متوجه وو۔ ولے لږه موده پس ئے په یو گوانډی ریاست حمله اوکړه۔ د دے ریاست حکمرانه یوه رانۍ ، درگا وتی ، نومیده۔ د دے رانۍ د لاسه باز بهادر بدترین شکست اوموندهٔ۔ د دے شرم نه پس باز بهادر بیا د جنګ نوم وانهٔ خست۔ او په عیش و عشرت کښے مصروف شو۔

باز بهادر د مختلفو صفتونو خاوند وو۔ د جنګ په فنونو کښے ډیر ماهر وو۔ ویلے شی چه د دومره کړنګ او دروند آواز خاوند وو چه په ځنګل کښے به ئے چغه اوویستله نو

(امزری) به د ځنګل نه اوتښتېده. په بل لور هغه په علم موسیقۍ کښې د عادل شاه سوری شاګرد وو او د دې فن یو بې مثله ماهر وو. په رقص و سرود کښې ئې ثاني نۀ لرله. د هندۍ ژبې یو بهترین شاعر وو. د هغۀ تصنیف کرده عشقیه هندی ګیتونه د دې صنف شاهکارګڼلے شي. د ظاهری حسن سره قدرت هغۀ ته یو رنګین مزاج او حسن پرست زړۀ هم ورکړے وو. د هغۀ په محل کښې نهه سوه پے مخې ، ښکلې سندرغاړے او ګډېدونکې ښځلې موجودے وے. چه په دوی کښې یوه ، روپ متی » هم وه. روپ متی په حسن او ښکلا ، رقص وسرود او هندی شاعرۍ کښې د خپلے زمانے یو بهترینه فنکاره وه. او باز بهادر د هغې په مینه کښې هرڅه هېرکړی وو.

د هندوستان سلطنت د پښتنو د لاسه نه اووتلو. د دهلی په تخت اکبر کښېنا ست. پښتانۀ امیران په خپل مېنځ کښې په خونړو جنګونو کښې لګیا وو. او کله به ئې په انفرادی حیثیت کښې د دهلی د تخت د راستنولو په خواهش کښې د مغلو سره جنګونه هم کول. د زمانے په سټیج د ډیرو واقعاتو پردے ښکته پورته شوے. مګر د محبت پرستار باز بهادر نۀ د دے نه ځان خبرولو او نۀ ئې پرے څه کار وو. د رقص و سرود ، عیش و عشرت او ښکلا په قربانګاه هغۀ خپل ځان ، مال و مآل هرڅه قربان کړی وو. دے مخې روپ وتی په خوږ آواز یو عشقیه ګیت اوریدل هغۀ د میدان جنګ دے دهنګامه شور و شر نه غوره ګڼل. دغه وجه وه چه نۀ هغه د خپلو پښتنو د حالاتو نه ځان خبرولو او نۀ ئې د مغلو خطره په خوا کښې تیریدله.

مغل مؤرخین په مالوه باندے د اکبر د حملے باعث دا بیانوی. چه باز بهادر چونکه خپل ځان رقص و سرود او عیش و عشرت ته وقف کړے وو. او د حکومت د کاروبار نه بیخی بے پرواه وو. په دے وجه په ملک کښې ډیره بد امنی وه. او خلق په ډیر تکلیف کښې مبتلا وو. په دے بنا مخلوق خدا د دے عذاب نه د خلاصولو په غرض اکبر په مالوه حمله اوکړه. او دا صوبه ئې په خپل سلطنت کښې شامله کړه.

ولے حقیقت داسے نۀ دے. دے ته فکرپکار دے چه د حکومت د کاروبار نه د باز بهادر بے پروائۍ د مغل سلطنت په مفادو څه خراب اثر نۀ کولو. دا هم نۀ ده چه ګوندے د مالوے خلقو د باربهادر د ظلم و غفلت په وجه اکبر ته په مالوے باندے د حملے د عوت ورکړے وو. په اصل کښې د ابتداء نه اکبر د مالوے قبضے ته لیوااله وو. د مالوے صوبه د خپل طبعی محل وقوع په وجه د ډیر اهمیت حامله وه. د دے په قبضے سره اکبر د دکن په لور هم خپل سلطنت ته توسیع ورکوڵے شوه. دغه وجه وه چه د دے حملے د پاره اکبر د باز بهادر بے

انتظامۍ او غفلت یوه بهانه اوګرزوله۔ دا خبر هم د فکر وړ ده چه د مالوې حکمران باز بهادر نهٔ خو د خپلو پښتنو سردارانو په مرسته کښې څه قدم اوچت کړے وو۔ کوم وخت چه هغوی د مغلو برخلاف په جنګونو کښې لګیا وو۔ او نهٔ ئے د مغلو برخلاف څهٔ داسے اقدام کړے وو۔ چه د هغې په وجه اکبر ته په مالوې باندے د حملے جواز پیدا شوے وے۔ که چرے واقعاتو په انصاف اوکتلے شی نو دا به معلومه شی چه د پښتنو او مغلو په جنګونو کښې باز بهادر غیرجانبداری اختیار کړی وه۔ او شاید چه دا پالیسی هغهٔ په دے غرض اختیار کړی وی۔ چه په دے ډول به هغه د مغلو د استعمار نه محفوظ پاتے شی۔ ولے دا د هغهٔ غلط فهمی وه۔ او د هغهٔ دا غلط فهمی زر لرے شوه۔

په مالوې باندے د حملے اراده اکبر په اول ځل په سنه ۱۵۵۹ء کښې کړی وه۔ دا حمله د بیرام خان د بغاوت په وجه ملتوی شوه۔ د بیرام خان د زوال نه پس په سنه ۱۵۶۱ء کښې اکبر بیا په مالوې د حملے اراده ښکاره کړه۔ او د ادهم خان کوکه او پیر محمد خان په ماتحتۍ کښې د مالوې برخلاف په ډیرے رازدارۍ او چپه خُله فوځونه اولیږل۔ باز بهادر که هرڅومره د کار نه وتلے او د حُسن غلام شوے وو۔ بیا هم پښتون وو۔ او د مالوې خود مختار حکمران۔ چه دا ادهم خان فوځونه د سارنګ پور نه تاوۍ شول نو ایله دغه وخت د باز بهادر په محل کښې د تنګ ټکور مجلس سوړ شو او هغه د مغلو مقابلے ته را اووتلو۔ ولے د جنګ نه اول ئے خپلو اعتباری امیرانو ته دا اووئیل چه د شکست په صورت کښې روپ متی او د هغې سره نورے ډیرش سندر غاړے پیغلے په خپل لاس اووژنئ۔ چه زما دا امانت د مغلو په لاس ورنهٔ شی۔

د باز بهادر د روېۓ او عادتونو نه اکثر جنګیالی او ننګیالی پښتانهٔ د هغهٔ د خوا نه تلی وو۔ او د هغهٔ فوځی طاقت ډیر کمزورے شوے وو۔ بیا هم د ناکامه هغهٔ د مغل فوځونو مقابله اوکړه۔ ولے کوم زړهٔ چه د بنو په عشق ژوبل شوے وی هغه د دشمن تورو او غشو ته کله ټینګیدے شی د باز بهادر مقابلے خوند اونهٔ کړو۔ تیښته ئے اوکړه۔ د هغهٔ خزانے، مال و دولت او سلطنت هر څه د مغلو په قبضه کښې راغلل۔ د باز بهادر د هدایت مطابق د هغهٔ ملازمینو د تیښتے په وخت کښې د هغهٔ پری رویه محشوقے په خپل لاس څه مړے کړے او څه په تادۍ کښې د خطرناک حده پورے ژوبل کړے۔ او په خپل خیال کښې مړے فرض کړے وے۔ په دے ژوبلو کښې روپ متی هم وه۔ چه د خطرناکو زخمونو باوجود لا ژوندۍ وه۔

د روپ متی حسن او فن یواځے په باز بهادر جادو نهٔ ووکړے بلکه ادهم خان هم د هغې د حسن او رقص و سرود شهرت اوریدلے او په نالیدو د هغې وصال ته لیواله وو۔ او دا ئے خواهش

وو چه د اکبر د راتلو نه وړاندے وړاندے د روپ متي په وصال سیراب شوے- دغه وجه وه چه هرکله هغه د روپ متي دحال نه خبر شو نو سمدستي ئے ماهر طبيبان اوجراحان دهغے په علاج مقرر کړل -او په دا سے دلسوزئ او همدردئ ئے دهغے علاج اوکړو چه په څو ورځو کښے جوړه شوه - د جوړیدو نه پس ادهم خان روپ متي ته خپل اعتباری استاذی ورواستول- او خپل عرض ئے ورښکاره کړو- روپ متي يوه ډيره وفاداره او په لوظ پوره ميرمن وه- هغه يوځل د باز بهادر شوی وه- اوهم دهغهٔ وه- اوس د بل چانهٔ شوه‌کیدے- ولے دغه وخت په ګرانه کښے اوښتله هغے ته دخپل عزت وناموس ساتل ناممکن معلوم شول- اخر دهٔه لږ شان فکرکولو نه پس ئے دادهم خان استاذی ته تسله ورکړه - او دهغهٔ په ځله ئے ادهم خان ته دشپے په خاموشئ کښے په يومقررځت د راتلو دعوت ورکړو- د دے نه پس هغے اولامبل ، اوخپلے بهترينے جامے ئے واغوستلے- وائي چه ددے نه پس ئے هغه غزلے اوګيتونه په ډير سوزسره اوويئيل - کوم چه به ئے د باز بهادرپه ځکښے وئيل- او بيا ئے د باز بهادر په فراق کښے ډير اوژړل- او خپل زړهٔ ئے سپک کړو - د دے نه پس يو موټے کافور يا نورڅه خواب آوردارو ئے اوخوړل- او په خپل پالنګ کښے اوغزيدله- او په سپين څادرکښے پټه شوه-او دا سے اوده شوه چه بيا را ويښه نهٔ شوه- په مقرره وخت ادهم خان په ډيرےمينے اوليوالتيا دهغے کمرے ته راغے - ولے چه د روپ متي نه ئے څادر لرےکړو نو دغه وخت هغهٔ ته معلومه شوه چه روپ متي د باز بهادر په وفاداری کښے خپل ځان قربان کړے دے - ادهم خان د باز بهادر په ملک قبضه کړی وه - ولے دهغهٔ د زړهٔ په خزانه (روپ متي) ئے قبضه او نهٔ کړے شوه - روپ متي ځان د باز بهادر په وفا کښے قربان کړو - او يواځے دا نه چه د باز بهادر په ځکښے ئے خپل ځان سرخرو يه کړو بلکه په دے قربانئ ئے لازوال شهرت هم بياموند- اکبر چه د روپ متي د دے قربانئ نه خبر شونو دهغهٔ ئے هم ډيره ستائينه اوکړه - مالوه د اکبر په سلطنت کښے په ۱۵۶۱ء کښے شامله شوه-

د باز بهادر د حکومت زمانه اووهٔ نيم کاله وه- د شکست نه پس باز بهادر د مالوے او خانديش په ځنګلونو کښے اواره شو- په کال ۱۵۶۲ء کښے هغه يوځل بيا د خانديش د فوځونو په کومک په مالوه قبضه اوکړه - ولے دا قبضه زرختم شوه -او باز بهادر بيا دربه ديکه شو - د دے نه پس باز بهادر څوځله د اکبر د مقابلے څه ناکامه کوششونه اوکړل او په اخر کښے ئے د اکبر سره روغه اوکړه- او دهغهٔ په اميرانو کښے شامل شو - اکبر د دے دخپل دربار په موسيقارو کښے شامل کړو- او هزاری منصب ئے ورکړو- وروستو دا منصب دوهزاری ته اورسيدو- ولے په حقيقت کښے باز بهادر د اګرے په قلا کښے دخپل مرګه پورے نظربند وو- ترڅومره چه د باز بهادر د منصب تعلق دے - دا هم صرف کاغذی کاروائي وه-

# په هند کښې د پښتنو د سلطنت د زوال اسباب

پښتانه د ډیرې اوږدې زمانې نه په هند کښې استوګن شوي او دا ملک ئې خپل ملک ګرزولے وو. د دے وطن ملکي تهذیب و تمدن ئې خپل کړے وو. ان چه خپله ژبه پښتو ئې هم پرېښودلې او د ملکي خلقو او لسي ژبه (هندي) ئې خپله کړې وه. د دے وسیع ملک ټول ذرائع هم د دوی په قبضه کښې وو. د دوی افرادي طاقت هم د مغلو په نسبت زیات وو. د مغلو په مقابله کښې دوی څهٔ کم زړور او کم جنګیالان هم نهٔ وو. سره د دے ټولو اسبابو دا ډیره د تعجب خبره ده. چه دے خلقو (پښتنو) د مغلو په مقابله کښې بیا بیا شکستونه اوموندل. او په اخر کښې ئې سلطنت هم بائلود. موږ ته د دے اسباب لټول پکار دي.

شیرشاه به اکثر د خپلو خلقو په محفل کښې دا وئیل، پښتانهٔ په مردانګۍ او شجاعت کښې د مغلو نه په هیڅ لحاظ لاندے نهٔ دي. ولے دوی د هندوستان بادشاهي محض د خپل نفاق او باهمي بغض و نفرت په وجه بائیلوده. دے کښې شک نشته چه د شیرشاه دا وینا د پاني پت د اول جنګ (۱۵۲۶ء) په لور اشاره ده. ولے د پښتنو د زوال د اسبابو کومه تجزیه چه شیرشاه کړې ده. د پاني پت د دویم جنګ په آئینه کښې د دوی د زوال هم دغه اسباب څرګند ښکاریږي. په دواړو موقعو کښې د دوئ د شکست او زوال اهم باعث د دوی باهمي رقابت، په خپلو کښې د یو بل نه نفرت او په خپل مینځ کښې د دوی نفاق وو. په دواړو موقعو پښتانهٔ په خپل مینځ کښې په خونړو جنګونو اخته وو. او دغه شان ئې د مغلو د پاره د هندوستان فتحه اسانه کړه. د پښتنو دا بدخصوصیات نهٔ صرف د پاني پت په دواړو جنګونو کښې د دوئ د تباهۍ باعث ګرزیدلي وو. بلکه د دے نه پس هم د تاریخ په هر دور کښې د دے خصوصیاتو په وجه د پښتنو مقاصدو ته عظیم نقصان رسیدلے دے.

د پښتنو د سلطنت د زوال د اسبابو په لټون کښې عموماً دا وئیلے شي چه د اسلام شاه مطلق العنانۍ او د هغهٔ له خوا د پښتنو امیرانو د بربادۍ پالیسۍ په پښتنو کښې تفریق او نفاق

پیدا کړو- او د سلطنت د زوال د پاره د هغهٔ په وخت کښې حالات پیدا شول - ولې حقیقت داسې نهٔ دے - د اسلام شاه د پالیسئ مقصد په پښتنو کښې نفاق پیدا کول نه بلکه دد ے نفاق ورکول وو- د هغهٔ دا مقصد وو چه د پښتنو قبیلوی امتیازات ختم کړی او دغه شان د ټول پښتون نه یو اولس او یوه قبیله جوړه کړی - او په دے ډول خپل سلطنت مضبوط او پائیدار کړی - او دا ډیره ممکنه ده - چه که چرے هغه څه موده ژوندے پاتے شوے وے نو هغه به په خپل مقصد کښې کامیاب شوے وو - یا که چرے د هغهٔ جانشین هم د هغهٔ په شان یو مضبوط طاقتور او د مضبوط ارادے خاوند وے نو د پښتنو سلطنت به د ورو ورو جاګیرونو په ځائے په یو لوے وحدت کښې تبدیل شوے او د غه شان به بنه مستحکم شوے وو- لیکن د بده مرغه د هغهٔ د حکومت زمانه هم د شیر شاه په شان ډیره لنډه وه- او د هغهٔ جانشین اول یو ماشوم او وروستو د یو کمزوری طبیعت خاوند عادل شاه شو - دا حقیقت دے چه دا د عادل شاه نااهلی وه- چه د اسلام شاه په محنت ئے اوبهٔ توئے کړے او په دے ډول په شمالی هند کښې د پښتنو سلطنت سقوط او موند -

لکه چه او وئیلے شول د اسلام شاه د پالیسئ مدعا دا وه چه د پښتنو نه قبیلوی امتیازات لرے کړی - په اصل کښې هم دغه قبیلوی امتیازات پښتانهٔ د یو لوئے سلطنت د حصول په لړکښې په یو مرکز عونډیدلو او متحد کیدلو ته نهٔ پریږدی - دا حقیقت د پښتنو د تاریخ په هر دور کښې ځرګند دے - د مثال په ډول به د یو واقع ذکر کافی وی -

د اسلام شاه په امیرانو کښې تاج خان کرلاني د ډیرے لوئے پائے امیر وو - او د خپل علم وفضل او سیاسی تدبر او دور اندیشئ په صفاتو کښې د شیر شاه د پائے یو پښتون وو- دغه وجه وه چه اسلام شاه د خپل مرګ په وخت کښې هم دا لوئے پښتون د خپل نابالغ ځوی فیروز سرپرست مقرر کړو- ولے تاج خان که هرڅومره د خپل علم و فضل او سیاسی تدبر په وجه دد ے اهمے ذمه داری قابل وو خو د کرلاني قبیلے یو فرد وو - او د سوری قبیلے امیرانو دا نهٔ شوه برداشت کولے چه د بلے قبیلے فرد دِ دَ دوی په حکومت کښې دومره د اقتدار او ذمه واری عهده حاصله کړی - چنانچه د سوری خاندان نه په کرلاني قبیله کښې د سلطنت د انتقال د موهوم خطرے پیش نظرئے د نالائق عادل شاه د ناوړه کارونو سره مرسته او کړه او هغه ئے د شیر شاه په تخت کښینولو - د پښتنو په قبائیلو کښې د قبیلوی امتیاز په وجه باهمی رقابتونه د تهذیب و ترقئ په دے زمانه کښې هم موجود دی - اګرچه شکل ئے بدل دے -

د پښتنو د سلطنت د زوال په اسبابو کښې د پښتون فوځ کردار هم لوئے اهمیت لری - د

پښتنو فوځ چه د شیر شاه د افتخار سرمایه او د اسلام شاه د اقتدار یوه لویه ذریعه وه د عادل شاه په وخت کښې د هغهٔ فوځ ضبط و نظم او اخلاقي حالت ډیر غورزیدلے وو ـ د دهٔ په وخت کښې دے فوځ د نظم وضبط پابند شاهي فوځ حیثیت نه بلکه د یوبې ضبطه ، خود سره قبائیلي لښکر شکل اختیار کړے وو ـ چه د جنګ په میدان کښې به ئے د نظم و ضبط د پابندئ په ځائے د خپلے مرضئ زیات خیال ساتلو ـ په دے ورځو کښې به پښتون فوځ د مکمل فتح د حصول نه اول اکثر په لوټ تالان لاس پورے کولو ـ او اصلي مقصد به ئے شا ته او غورزولو ـ د غه وجه وه چه په اکثرو موقعو کښې به دوی د دے خپل بد عادت په وجه ګټلے جنګ په شکست بدل کړو ـ او دا یو حقیقت دے چه په اکثرو جنګونو کښې مغل په پښتنو باندے د شجاعت او مردانګئ په وجه نهٔ وو بریالي شوی بلکه د دے وجه به د پښتون فوځ بے سری ، سرکښي او بے ضبطي وه ـ او د مغلو زبرَست فوځئ تنظیم او د ضبط و نظم پابندی ـ

دا حقیقت هم قابل غور دے چه باوجود د دے چه پښتانهٔ د مغلو په نسبت د ډیرے مودے نه په هند کښې استوګن وو ـ او دا ملک ئے خپل وطن ګرزولے وو ـ ولے دوی باوجود دوی د ملکي خلقو په سرګرم تعاون او همدردئ په حصول کښې کامیاب شوی نهٔ وو ـ د ملکي خلقو مینه ، همدردی د دوی په نسبت د مغلو سره زیاته وه ـ دا حقیقت د دے نه څرګندیږی چه د اسلام شاه د مرګ او بیا د عادل شاه په وخت کښې د پښتنو په خپلو کښې د جنګونو خبرونه د دهلي او آګرے ځنې خلقو همایون ته لیږلي وو ـ او هغهٔ ته ئے په هند باندے د حملے دعوت ورکړے وو ـ دا حقیقت د اسلام شاه د خپلے وینا نه هم څرګند دے ـ دا یو تاریخي حقیقت دے چه اسلام شاه به د مولانا عبدالله سلطان پوری ډیر زیات قدر کولو ـ او هغه ئے د خپل سلطنت صدرالصدور او شیخ الاسلام مقرر کړے وو ـ د دے باوجود یو ځل اسلام شاه دا وئیلي وو چه د بابر پنځه ضامن وو ـ غلور وخو هندوستان پریښو دلے دے او پنځم په هندوستان کښې پاتے دے ـ او هغه مولانا عبد الله سلطان پوری دے ـ د دے نه دا حقیقت واضح دے چه د نوموړی مولانا به د همایونؔ سره څومره همدردی وه ـ ولے د مغلو سره د دے دومره همدردئ باوجود اسلام شاه هغه محض د علمي قابلیت او فضیلت په وجه په خپل سلطنت کښې په دومره اهمه عهده مقرر کړے وو ـ د ملکي خلقو د مغلو سره دا همدردی او مینه د دے خبرے غمازی هم کوی چه ملکي خلقو به پښتنو ته په درونډ نظر نهٔ کتل ـ او د شپاړسمے صدئ په نیمه کښې هم پښتانهٔ دوی پردی ګڼل ـ او څه رنګ چه ئے د خلجیانو او بیا د لودیانو د حکومت په آغاز کښې د دے خلقو د حکومت مخالفت کړے وو ـ د غه رنګ ئے په شپاړسمه صدئ کښې هم دا خلق د حکومت د پاره موزون نهٔ ګڼل ـ

اوددوی دحکومت او اقتدار نه مطمئن نهٔ وو۔

دپښتنو دحکومت نه دملکی خلقو دنفرت یو اهم باعث دپښتنو ترمینځه مسلسل جنګونه هم وو۔ دے مسلسلے خانه جنګئ هم دپښتنو شهرت او سلطنت ته لوئے زیان رسولے وو۔ د ۱۵۵۳ء نه ۱۵۵۶ء پورے پښتانهٔ امیران په خپل مینځ کښے په خونړو جنګونو اخته وو۔دا ظاهره ده چه ددے مسلسلو جنګونو په وجه به په ملک کښے امن وامان مفقود وو۔زراعت ، تجارت او صنعت وحرفت به تباه وو۔ او دخلقو په امروزه ژوند کښے به ددے جنګونو په نتیجه کښے ډیرګړاونه پیښیدل۔ دبداونی مطابق ددے خانه جنګئیو په وجه په ۱۵۵۵ء کښے داسے خوفناک قحط راغلو چه زرګونه خلق په کښے تباه شول۔ دا ظاهره ده چه د زراعت نقصانونو، دتجارت د تباهئ او دقحطونو بربادئ به اولسی خلق دپښتنو دحکومت نه توبه ګار کړی وی۔ او دوی به دامن امان دقیام په خاطر هم همایون ته په هند باندے دحملے دعوت ورکړے وی۔ او ددے خلقو دحکومت په زوال کښے بهٔ دهرے ممکنے طریقے نه کار اخستے وی۔

دپښتنو دسلطنت دزوال یوه اهمه وجه داهم وه چه داسلام شاه دمرګ نه پس دپښتنو دسلطنت نه دشمال او مشرق دوه اهمے صوبے پنجاب او بنګال اووتلے۔ داسلام شاه په وخت کښے اګرچه په کابل باندے دهمایون قبضه وه ولے دپښتنو فوځی طاقت اکثر د پنجاب او « روه » په پښتنو مشتمل وو۔او دروه په پښتنو باندے همایون څه اقتدار نهٔ لرلو۔ دغه وخت کښے ګهکړان هم داسلام شاه دویرے نه خاموش وو۔ ولے داسلام شاه دمرګ نه پس په پنجاب کښے ګهکړانو بیا سراوچت کړو۔ دا خلق دپښتنو په مقابله کښے د همایون طرفدار وو۔ او کابل دهمایون په قبضه کښے وو۔ دعادل شاه په وخت کښے محمد خان سور په بنګال کښے خپل خود مختار حکومت قائم کړو۔ دغه شان دپښتنو مرکزی حکومت ته نهٔ د بنګال نه څه امداد رسیدلے شوا او نهٔ دوی دروه پښتانهٔ په خپلو فوځونو کښے برتی کولے شول۔ په ۱۵۵۵ء کښے په پنجاب باندے دهمایون قبضے دپنجاب او دشمال مغرب سرحدی علاقے پښتانهٔ په مکمل طور دهندی پښتنو نه اوشلول۔

دپښتنو دسلطنت دپاره دبنګال صوبه دطاقت یوه لویه ذریعه وه۔ ددے صوبے مالی ذرائعو او دولت دسوری خاندان دحکومت په استحکام کښے لویه برخه لرله۔ دغه وجه وه چه ددے اهمے صوبے ته شیرشاه او اسلام شاه په خپل عهد کښے ډیر اهمیت ورکړے وو۔ اوپه دے زرخیزے او مرے پټے علاقے ئے مضبوط اقتدار ساتلے وو۔ ولے دعادل شاه سوری په وخت کښے دا صوبه دمرکزی حکومت نه جدا شوه۔ او په دے وجه مرکزی حکومت ډیر کمزورے

شو۔ او په شمالي هند کښې د پښتنو د سلطنت د زوال رفتار تيز شو۔

ځينې مؤرخين د پښتنو د سلطنت د زوال په اسبابو کښې يو سبب د پښتنو په سلطنت کښې د هيمو حد په هورته اقتدار رسيدل ګڼي او دا وائي چه اکثر پښتانه اميران د يو هندو په دومره لوئے اقتدار ناراض وو۔ او د هغه سره به ئے تعاون نه کولو۔ او دغه د پاني پت په ميدان کښې د پښتنو د شکست باعث وو۔ ترکومه چه د هيمو د غير معمولي اقتدار او د پښتنو اميرانو د ناراضګئ تعلق دے۔ دا ظاهره ده چه پښتانه به واقعي په خپل سلطنت کښې د يو هندو په دومره لوئے اقتدار ناراض وو۔ ولے ترکومه چه د هيمو سره د پښتنو اميرانو د تعاون تعلق دے۔ دا حقيقت دے چه هيمو په خپل قابليت او هوښيارتيا د سرکښو پښتنو تعاون په هره موقع حاصل کړے وو۔ او ددے ثبوت دا دے چه هيمو په اکثرو موقعو کښې په خپلو مخالفينو کاميابي حاصله کړې وه۔ او دا بے د فوځ د اميرانو د تعاون نه ممکنه نۀ ده۔ د پاني پت په ميدان کښې د پښتنو د شکست وجه د هيمو سره د پښتنو اميرانو د عدم تعاون نتيجه نۀ ده۔ بلکه دا د هيمو د قيادت کمزوري وه چه د هغې په وجه ئے پښتانه هم مايوس کړل۔ او دوی شکست اوموند۔

# پہ سوری عهد حکومت کښې د علومو فنونو روزنه او ترقي

د سوری پښتنو عهد حکومت د ملکی خلقو د تهذیبی ژوند په څنګ ارخونو کښې نمایان حیثیت لری۔ د دے بادشاهانو په دور کښې د عربۍ فارسۍ ژبے په تعلیماتو کښې قابل قدر اضافه شوی وه۔ د دوی دا دور د هندی ژبے او هندی ادب د شاندارے ترقۍ دور هم دے۔ په فن تعمیر او هندی مسلم موسیقۍ فن ته هم د دے بادشاهانو په عهد کښې د ستائینے وړ پښنے ورکړے شوی دی۔ دا دور په خصوصیت سره د دوؤ مذهبی تحریکونو د پاره هم مشهور دے چه یو د مهدویت تحریک دے۔ او بل د بهکتی تحریک۔

د سوری خاندان بادشاهان بالخصوص شیرشاه او اسلام شاه د علومو فنونو سرپرست او د عالمانو فاضلانو ډیر قدردان وو۔ د دے دور څو نومیالی عالمان د خپل علم و فضل په لحاظ سره د شهرت انتها ته رسیدلی وو۔ په دے عالمانو کښې زیات مشهور مولانا عبدالله سلطان پوری وو۔ چه د شیرشاه او اسلام شاه په وخت کښې د هغوی د سلطنت شیخ الاسلام او صدر الصدور وو۔ نوموړے په خپله زمانه کښې د اسلامی علومو یو جیّد او بے مثله فاضل وو۔ او په حکومت او د ملک په اولس ئے بے شانه اثر لرلو۔

په دے ډول میر سید رفیع الدین د شیرشاه د زمانے یو بل لوئے عالم وو۔ په دے ډول مولانا جلال دانشمند، شیخ مبارک (د ابوالفضل او فیضی پلار) او شیخ بدّهه دانشمند د دے دور څلانده او بے مثله عالمان وو۔ شیخ بدّهه د خپل علم او پرهیزګارۍ له کبله په شیرشاه ډیر اثر لرلو۔ او شیرشاه به د دهٔ دومره قدر کولو۔ چه دهٔ ته به ئے د تلو په وخت کښې په خپله پیزار سمولو۔

په دے دور کښې د فارسۍ څو نومیالی شاعران هم وو۔ چه په هغو کښې شیخ نعیم، شیخ عبدالحیٔ (چه د شیخ جمال کنبوه دهلوی ځوئے وو۔ ... سیفی او شاه محمد فرملی د ذکر وړ دی۔ د غه شان تاج خان کرلانی او د هغه ورو سلیمان کرلانی هم د خپل علم و فضل او

دانشمندئ په وجه د ډیرشهرت خاوندان وو.

په خپله اسلام شاه د ډیرے اوچتے پاے شاعر وو. او د عالمانو فاضلانو او شاعرانو ډیرقدردان وو. کومے ادبي سرګرمئ چه په دے دورکښے شروع شوے وے. وروستو د مغلو په دورکښے هغه ډیرے سیرانے شوے. او په یو عظیم ادبي، ذهنی او علمی تحریک کښے بدلے شوے.

د سوری بادشاهانو په عهدکښے هندئ ژبے او ادب هم شانداره ترقي کړي وه. سوري بادشاهان د هندئ ژبے په روزنه کښے ډیرکوشان وو. او په هره ممکنه طریقه بے ئے د دے په توسیع او خورونه کښےکوشش کولو. په دغه دورکښے پښتنو هندی ژبه خپله کړي وه. او د خپلے مورنئ ژبے په شانے بے ئے هندی وئیله. دوی اول پښتانهٔ وو چه د هندئ ژبے ته ئے په درنه سترګه کتلی وو. او په خپل ریاست او معاشره کښے ورله موزون مقام ورکړے وو. د سوري خاندان د عهد مسکوکات په هندئ او فارسئ ژبو کښے ضرب شوی دی. دا رواج په بنګال کښے د کرلاني پښتنو په عهدکښے هم جاري وو. دے بادشاهانو به په هره پرګنه کښے د فارسئ وقائع نویس سره هندی وقائع نویس هم مقررولو. دغه شان دے بادشاهانو هندی ژبه چه د ملک داولس عامه ژبه وه. ولے د مودو مودو را سے ورنه بے پروائي اختیار شوی وه. حکومتي ژبه اوګرزوله. اګرچه اکبر هم د هندئ ژبے سره د مینے دعوئ لرله. ولے د دے دعوے باوجود هم هغهٔ هندئ ژبے ته هغه مقام ورنهٔ کړوکوم چه د سوری خاندان بادشاهانو دے ژبے ته ورکړے وو. دحکومت د سقوط نه پس هم دے پښتنو د هندئ ژبے سره خپل تعلق پرے نښو. بلکه دا ژبه دوی د خپل ځان سره د هند انتهائي مشرقي علاقو (سلهټ) پورے هم اورسوله.

د هندی ژبے، ادب او هندی تمدن سره د پښتنو د دے مینے او روزنے نه دا صفا معلومیږی چه دے خلقو د زړهٔ د خلاصه دا خواهش لرلو چه د ملک د اولس سره په امروزه ژوند، غم درد او ژوند ژواک کښے خپل ځان شریک کړی. او د یو بل د خوا بشانو او جذباتو احترام اوکړی. دے خلقو (پښتنو) هندی ژبه او هندئ تهذیب هغه هومره خپله ژبه او خپل تهذیب ګڼلے وو څومره چه د ملک عام اولس به (هندوانو، مسلمانانو) خپل ګڼل. دا د دے خبرے څرګند ثبوت دے چه پښتانهٔ بادشاهان د ملکي خلقو د تعاون او اشتراک د حصول خواهشمند وو. ځکه دوی خپل ځان د ملکی خلقو سره په تهذیبي او تمدني روابطو کښے مشترک او متحد کول ضروری ګڼلی وو. د خپلو حریفانو (مغلو) په مقابله کښے دوی د ملکي اولس همدردی او تعاون حاصلولو ته لیواله وو. په دے بنا دوی د باهمي مفاهمت او اشتراک پالیسی اختیار کړی وه. د دوی د دے پالیسئ عکاسی په هندی ادب

تهذيبي روايانو، هندي مسلم موسيقۍ او فن تعمير کښې څرګند ده. دغه شان په خپل سلطنت کښې د ذمه وارۍ په اهمو عهدو باندې د هندوانو لکه د برنريد ګور، تودرمل او هيمو او داسې نور، د هندوانو عالمانو او فنکارانو سرپرستي داسې خبرې دي چه د پښتنو له خوا د باهمي مفاهمت او باهمي تعاون د حصول خواهش ترنه ظاهريږي.

لکه چه اووئيلے شول دے پښتنو بادشاهانو د هندي ژبې د شاعرانو او اديبانو په باب کښې ډيره فراخدلانه او د فياضۍ پاليسي اختيار کړې وه. شاه محمد فرملي چه د اسلام شاه يو مقتدر امير وو د هندي ژبې يو بلند پايه شاعر وو. دغه شان باز بهادر او د هغهٔ وفادارے معشوقه روپ متي د فن موسيقۍ او خپلې رومانې شاعرۍ په وجه لازوال شهرت ګټلے وو.

د اسلام شاه د دربار موسيقار مها پتر نومے يو هندو وو. چه د هندۍ ژبې يو لوئے شاعر او د هندي موسيقۍ يو بے مثله فنکار وو.

د سوري خاندان عهد حکومت د هندي شاعرۍ د ترقۍ زمانه وه. ملک محمد جائسي، سور داس، هري داس، او تلسي داس داسې شاعران وو. چه د خپلې شاعرۍ په وجه د شهرت انتها ته رسيدلي وو. د هندي شاعرۍ او ژبې په ترقۍ کښې د بهکتي تحريک هم لويه برخه وه.

**موسيقي:-** دا عهد د هندي مسلم موسيقۍ د عروج زمانه وه. د سوري خاندان د بادشاهانو د موسيقۍ سره ډيره مينه لرله. او د دے فن د اهل کمالو به ئے ډير قدر کولو. د دے فن په ترقۍ کښې د بهکتي تحريک حصه هم زياته وه. مشهور بهکت موسيقار سورداس د اسلام شاه پرورده او د هغهٔ په دربار کښې ځليدلے وو. رام داس نومے يو موسيقار هم د اسلام شاه پرورده وو. هم په دے ډول سوامي سورداس د دے عهد د فن موسيقۍ يو بے نظير فنکار وو. د اکبر د دربار مشهور موسيقار تان سين د دهٔ هم شاګرد وو. عادل شاه په خپله د فن موسيقۍ يو بے نظير فنکار وو. او په موسيقۍ کښې د دهٔ فنکارۍ ته د هغه وخت فنکاران حيران وو. تان سين او باز بهادر چه په دے فن کښې د لازوال شهرت خاوندان دي. د دهٔ شاګردان وو.

**فنِ تعمير:-** څه رنګ چه د سوري بادشاهانو عهد د هندي ادب د ترقۍ يو ځلانده دور وو. دغه شان په دے دور کښې په فن تعمير کښې هم نمايان ترقي اوشوه. سوري بادشاهانو په خپل وخت کښې په مختلفو ځايونو کښې محلونه، جوماتونه، او په دهلي، رهتاس، ګواليار، اګرے چُنار، او مانکوټ او نورو ډيرو ځايونو کښې قلا ګانے تعمير کړے وے. په دے عمارتونو کښې انګريزانو په خپل عهد حکومت کښې د جوماتونو او مقبرو نه اکثر وران کړي دي. دا عمارتونه د فن په لحاظ په خپل وخت کښې د ډيرے ستائنے وړ وو. د قلعه رهتاس او قلعه مانکوټ عمارتونو

دځپلې زمانې د هرمکتب خیال د خلقو نه تعریف او توصیف حاصل کړے وو۔

د سوری عهد په عمارتونوکښې په سهسرام کښې د شیرشاه مقبره د هغه زمانې د طرزتعمیر یوبې نظیره نمونه ګڼلې شي ۔ د دے عمارت اغاز شیرشاه په خپل ژوند کښې کړے وو ۔ او تکمیل ئې د اسلام شاه په عهدکښې اوشو ۔ دا عمارت د خاکې ، شان و شوکت او سنګلاخ په لحاظ د فن تعمیر یو شاهکار ګڼلې شي ۔ دغه شان د دهلی زړه قلا او د دے قلا دننه د شیرشاه تعمیر کړده جومات د افغان طرز تعمیر یو اعلیٰ مثال دے ۔

د سوری بادشاهانو تعمیرکړده عمارتونه د فن تعمیر د ماهرینو په خیال کښې د ډیرے ستائینې ور دی ۔ د دے عمارتونو په باب کښې دا مشهوره ده چه دوی د دیوانو په شان د ځپلو عمارتونو آغاز کړے وو ۔ مګر د جوهریانو په شان ئې ختم کړل ۔ د دے عهد د عمارتونو یو خاصیت دا دے چه دا عمارتونه ډیر شاندار ، باوقار ، مضبوط او نادر دی ۔ او د دے نه د پښتنو د اصلی فطرت او طبیعت اندازه ګکی ۔ د دے عمارتونو بل نمایان خاصیت دا دے چه په دے کښې هندو او مسلم طرز تعمیر هم اهنګ دے ۔ په دے وجه د دے نه یو داسے طرز تعمیر پیدا شوے دے چه په هغې کښې هندو او مسلم خیالات په یو مشترک تهذیبي سطح بانده لیدلے شي ۔

**د مهدویت تحریک** :۔ لکه چه وړاندې شوی دی د سوری پښتنو عهد د دوؤ مذهبي تحریکونو د پاره مشهوردے ۔ چه یو د مهدویت او بل د بهکتی تحریک دے ۔

په هندوستان کښې د مهدویت د تحریک بانی د جونپور یو عالم وو ۔ چه میر سید محمد (رحمه الله) نومیدهٔ ۔ دے سړی د مهدویت دعوئ اوکړه ۔ او په لږه موده کښې ئې ډیر مریدان پیدا شول ۔ ولے راسخ العقیده عالمانو د دهٔ مخالفت شروع کړو ۔ او د دے په نتیجه کښې دے د جونپور نه ګجرات ته لاړ ۔ ولے هلته هم تیکاو نهٔ شو او د حج په اراده د مکے معظمے په لور روان شو لیکن په بلوچستان کښې اوو ژلے شو ۔ ولے د سید محمد په مرګ د هغهٔ تحریک ختم نهٔ شو ۔ د دهٔ نه پس د دے تحریک واګے د دهٔ دوؤ شاګردانو لاس ته راغلے ۔ چه د یو نوم میاں عبدالله وو ۔ او په خټه نیازی پښتون وو ۔ او بل شیخ علائی نومیدهٔ چه په اصل کښې بنګلے وو ۔ ولے په بیانه کښې استوګن وو ۔ شیخ علائی یو ډیر فصیح ، خوش ګفتار او بهترین ویونکے وو ۔ د دے صفاتو په وجه شیخ علائی د مهدویت تحریک په لږه موده کښې په خلقو کښې خور کړو ۔

د دے تحریک د پیروکار دا اصول وو چه دوی به د دنیاوي ژوند نهٔ کولو ۔ ډیر ساده او پاک ژوند به ئې تیرولو ۔ موږ به ئې هرو مرو په جمع کولو ۔ په خپل مینځ کښې په ورځ کښې به ئې یو ځل جرګه کوله ۔ دوی د ذاتی جائداد او ملکیت قائل نهٔ وو ۔ هر شے به ئې په خپل مینځ

کښېٔ برابر برابر تقسیمولو - چرته چه به دوی تلل نو دوی به پوره پوره وسله اخولی وه -

ورو ورو چه د دوی طاقت او جمعیت زیات شو نو دوی د معاشرے د اصلاح په نوم د خلقو په معاملاتو کښې دخل اندازی شروع کړه - دوی به په په بازارونو کښې ګرزیدل - او څوک چه به ئے په خلاف شرع کار لیدلو - هغه به ئے منع کولو - که چرے دوی به یو څل څوک د بدکار نه منع کړل او بیا به هم هغوی هغه بد کارکولو نو دوی به په هغوسختی کوله - ان چه د هغوی په وژلو به ئے هم صرفه نهٔ کوله - چونکه اکثر مقامی حاکمان او اهلکار د دوی هم خیال او طرفداران وو - نو د دوی په دے بے قاعدګئیو به ئے چشم پوشی کوله - او بالفرض که څینے اهلکار به د دوی هم خیال نهٔ وو ولے هغوی به هم د دویٔ د ویرے نه غلی وو -

د دے تحریک ذمه وارو افرادو به د خپل خیال او اصولو مطابق فتوے هم شائع کوٓلے - او خلق به ئے د هغو په پابندیٔ مجبوروَل - کومو خلقو چه به د دوی د احکاماتو د تعمیل نه انکار کولو - هغه به دوی د مقامی حکومت د علم او اجازت نه بغیر وژل - دوی په خپل اختیار د محتسبانو فرائض په خپل لاس کښې اخستی وو - او د قضا منصب ئے هم په خپل اختیار د خپل ځان سره ساتلے وو -

د ملکیت په باب کښې د دویٔ عقیده د اشتراکیت په اصولو مبنی وه - او د ذاتی ملکیت اصول به ئے نهٔ منلو - غرض دغه شان ئے د سلطنت د ننه یو متوازی حکومت قائم کړے وو -

د دے تحریک نمایان خصوصیت فوځی خصوصیات وو - دوی به هروخت په وسله پوُد وو - او خپل خیالات او احکامات به ئے د دلیل او اپیل په ځائے د تورے په زور په خلقو ورتپل - او په دے باب کښې به ئے د حکومت د احکامو هیڅ پرواه نهٔ ساتله - د دے نتیجه دا شوه چه په عام اولس او د سلطنت په اهلکارانو کښې د دوی دا تحریک څه د دوی د اصولو او پاکبازیٔ په بنا او څه د ویرے له کبله مقبول شو - او د عامو عالمانو اثر او اقتدار ته پرِ لویه صدمه اورسیدله - دغه وجه وه چه د دوی سرګرمیٔ زیاتے شوے - نو راسخ العقیده عالمانو د دویٔ د عقائدو برخلاف خپل خفګان ظاهر کړو - او د دوی د مخالفت په غرض میدان ته راووتل - د دے تحریک د مخالفو عالمانو مشر عبدالله سلطان پوری وو -

ولے دا سے معلومیږی چه اسلام شاه د دے تحریک او د معاشرے د اصلاح سره همدردی لرله - او د هغهٔ دا خواهش وو چه معاشره دِ د غیر اسلامی رسوماتو نه پاکه شی - او خلق د پاکبازیٔ او ساده ژوند په تیرولو عادت شی - دغه وجه وه چه هغهٔ د مهدویت د مبلغینو برخلاف د عالمانو فتوو او مشورو ته توجه نهٔ ورکوله - بهرحال اسلام شاه د دے تحریک

مثو شیخ علائی اګرے ته رااوغوښت - شیخ علائی چه د بادشاه په خدمت کښې حاضرشو نو د مروجه شاهي آدابو پابندی ئے اونه کړه - او صرف په اسلامی طریقه ئے بادشاه ته سلام اوکړو - د شیخ علائی دے رویے اسلام شاه ډیر غصه کړو - ولے بیا هم په دے موقع هغهٔ دصبر نه کار واخست - او شیخ علائی ته ئے څه او نهٔ وے - په دے موقع مولانا عبدالله سلطان پوری د شیخ علائی د عقائدو برخلاف فتویٰ ورکړه - او په هغهٔ ئے د الحاد الزام اولګولو - او بادشاه نه ئے د هغهٔ د قتل مطالبه اوکړه - ولے د شیخ علائی د تقریر نه اسلام شاه دومره متاثر شو - چه په ځائے د قتلولو ئے هغهٔ ته په خپل سلطنت کښې د محتسب اعلیٰ عهده پیش کړه - ولے شیخ علائی په ډیرے بے نیازئ ددے د قبلولو نه انکار اوکړو -

هرکله چه د شیخ علائی برخلاف د عالمانو اپیل په مذهبي وجوهاتو کارګرنهٔ شو - نو هغوی دا تحریک د سلطنت د پاره په سیاسی وجوهاتو خطرناک ثابتولو کوشش شروع کړو - په دغه ورځو کښې د اسلام شاه یو امیر بهادرشاه د خپلو ټولو متعلقینو سره د شیخ علائی مرید شو - مولانا سلطان پوری سمدستی اسلام شاه ددے واقع نه خبر کړو - او ورته ئے اووے چه که چرے ددے تحریک د بندیز تا بیا اونهٔ شی نو ډیر زر به نور امیران هم په دے تحریک کښې شامل شی - او د سلطنت د پاره به یوه خطره پیښه شی ولے داځل هم اسلام شاه په دے مشوره غوږ او نهٔ ګرولو - او د دے وجه دا وه چه اسلام شاه په خپله هم د عالمانو د اقتدار نه تنګ وو - او په دے تحریک کښې د عالمانو اقتدار ته زک رسیدو - او بله وجه ئے دا وه چه اسلام شاه په خپله هم د معاشرے د اصلاح خواهش مند وو - او دا ئے د زړهٔ نه غوښتله چه صحیح اسلامی معاشره دِ قائمه شی - ولے مولانا سلطان پوری هم په خپل کار کښې لګیا وو -

په ۱۵۴۹ء کښې چه نیازی قبیلے بغاوت کړے وو - او د دے بغاوت د ختمولو په غرض اسلام شاه پنجاب ته راروان وو - نو په دغه وخت کښې شیخ عبدالله نیازی د بیانه په خوااوشا کښې د خپلو څلورو سوو مریدانو سره ګرزیدلو - په نیازی قبیله باندے د شیخ عبدالله ډیر اثر وو - د مهدوی تحریک د پیروکارانو فوځی سرګرمیانو د اسلام شاه په زړهٔ کښې شکوک پیدا کړل او داخلق ئے د سلطنت د پاره خطره اوګڼله - د نیازی قبیلے او د مهدوی تحریک د واکدارانو ترمینځه روابط هم قائم وو - په دے حالاتو کښې اسلام شاه ته ددے تحریک نه ویره پیدا شوه - او هغه د شیخ عبدالله نیازی د ګرفتارولو او په دُرو باندے د وهلو حکم اوکړو - ددے حکم تحمیل اوشو - شیخ عبدالله ګرفتار او په درو اووهلے شو - ولے هغه په جسمانی لحاظ سره مضبوط وو نو

مړنۀ شو۔ د سزا خوړلو نه پس شیخ عبدالله د مهدویت د تحریک نه کناره کشی اختیار کړه۔ او باقی ژوندے د یو پرهیزګار او نیک سړی په حیثیت په سرهند کښے تیر کړو۔ په دے دول دشیخ علائیؒ دګرفتاریؒ او سزا حکم او شو۔ په دغه وخت کښے شیخ علائیؒ د طاعون په مرض ناجوړه وو۔ او ډیر کمزورے شوے وو۔ اسلام شاه په هغهٔ انتهائیؒ وس اوکړو۔ چه د خپلو عقائدو نه انکار اوکړی۔ ولے هغهٔ دا سے او نهٔ کړل۔ او مجبوراً سزا ورکړے شوه۔ ولے چه درے دُرے اووهلے شو نو ساه ترے اووته۔ د بداؤنی په قول دشیخ علائیؒ د قتل ذمه وار مولانا سلطان پوری وو۔ او ممکنه ده چه دا درست وی۔ مولانا به د خپل درباری حیثیت او په اولس باندےد خپل اثر و اقتدار د حفاظت په غرض اسلام شاه د دهٔ مرګ ته مجبور کړے وی۔

د شیخ علائیؒ قتل د راسخ العقیده عالمانو یوه فتحه وه۔ د دے نه پس په ټول ملک کښے د دے تحریک پیرو کار په ګوته اونیولے شول۔ او اووژلے شول۔ د مهدویت د پیرو کارانو د قتل سلسله د اکبر د سلطنت په ابتدا کښے هم څو کاله جاری وه۔ د دغه وجه وه چه شیخ مبارک (چه د دے تحریک یو غړے وو۔) څو کاله در په در پټ ګرزیدهٔ

**بهکتی تحـریـک** :- په کومه زمانه کښے چه مسلمانانو په هندوستان حمله کړی وه۔ دغه وخت په هندوانو کښے ډیر مذهبی رسمونه جاری وو۔ چه دهندوانو رابطه او واسطه د مسلمانانو سره راغله۔ نو دهندوانو مذهبی خیالات هم تر ډیره حده دمسلمانانو نه متاثر شول۔ او دغه شان په هندوانو کښے د هندو مذهب د اصلاح تحریک شورشو۔ او په مختلفو وختونو کښے په هندوانو کښے داسے ډیر مذهبی مصلحین پیدا شول۔ چه هغوی په خپلو کوششونو د هندو مذهب نه بے کار او فضول رسمونه ختم کړل۔ او په هغې کښے سادګی او اسانی پیدا کړه۔ د دے مصلحینو د تعلیم اصلی اصول د یو خدائےؐ عقیده وه۔ په دوی کښے څنے مصلحین داسے وو چه هغوی به سری رام چندرجي او څنو شری کرشن جي مهاراج د خدائے پاکؐ اوتار (مظهر) ګڼل۔ د دوی دا عقیده هم ده چه بنیادم صرف دخدائے پاک په فضل وکرم نجات موندلے شي۔ او دغه د بهکتی د عقیدے خلاصه ده۔

د بهکتی عقیدے په وده او نشو نما کښے د اسلامی تعلماتو لویه برخه وه۔ ولے د دے عقیدے ابتداء د اُپنشدونو او بهګوت ګیتا د تعلیم نه شوی وه۔ ولے په اتمه صدیؒ کښے د شنکراچاریه ،، فلسفے د دے ترقیؒ لاره بنده کړه۔ د دهٔ د فلسفے مطابق د دنیا وجود غیرحقیقی دے۔ حقیقی وجود صرف روح لری۔ دخدائے د پیژندلو ذریعه د علم نه بغیر بل څه نشته۔ په لسمه او یوولسمه صدیؒ کښے د دے فلسفے او تعلیماتو برخلاف ردِعمل شروع شو۔

او ډیر هند و مصلحین مذهب ددې عقیدې په تردید کښې لګیا شول - په څوارلسمه صدۍ کښې د راما ننه نوې یو هندو مذهبي مصلح په ذریعه دا تحریک په ټول وادۍ ګنګا کښې خور شو - نوموړې د ذاتونو د تقسیم سخت برخلاف وو -

د سوری خاندان د بادشاهانو د تهذیبي سرګرمیانو په نتیجه کښې دې تحریک په هندو معاشره کښې نور هم مقبولیت او وسعت بیا موندو - او د شمالي هند هر ګوټ ته او رسید - دا تحریک په بنګال کښې هم په ډیرې تیزۍ خور شو - په دې خطه کښې ددې تحریک مشهور مبلغ چیتن وو - چه د شپاړسمې صدۍ په نیمه کښې تیر شوې دې - په شمالي هند کښې ددې تحریک مقبولیت او خورونه د ولبه اچاریه او د هغهٔ د شاګردانو د مخلصانه کوششونو نتیجه ده - د بهکتي تحریک د ترقۍ په نتیجه کښې هندي ژبې او هندي ادب هم قابل قدر ترقي اوموندله -

# د لودي او سوري پښتنو په سلطنت کښې

## د بادشاه حيثيت او اميرانو سره د هغهٔ د تعلق نوعيت

د هندوستان مسلم بادشاهان خوا که ترک وو - که مغل او که پښتانهٔ په بنيادي طور مطلق العنان او خود مختاره وو - اګرچه د اسلامي شريعت پابندئ د دوی په مطلق العنانئ او خود مختارئ کښې ډير بنديز راوستلے شو - د بادشاه د استبدادی قوتونو په لارکښې د مذهب قوت يو لوئ بنديز وو - که چرے بادشاه به ظالم او بے انصافه وو - او د وزيرانو د مشورے قدر به ئے نهٔ کولو - ولے د دے باوجود به هم د هغهٔ دا مجال نهٔ وو - چه د قران د حکمونو نه ئے خلاف کړے وے - او د قرآني احکامو تفسير و تشريح به عالمانو کوله - دغه وجه وه چه په اکثرو موقعو به عالمانو د ظالم بادشاه مخالفت کولو - او خلق به ئے د بادشاه د شر نه بچ کول -

په دے زمانه کښې ټول ملک په جاګيرونو کښې تقسيم وو - او د دے نتيجه دا وه چه نهٔ خو د جاګيردارانو او مرکزي حکومت ترمينځه د اتحاد څه مضبوطه رشته قائمه وه او نهٔ د رعيت او جاګيردارانو ترمينځه - د هرے خبرے دارومدار به د بادشاه په ذات وو - که بادشاه به مضبوط، قابل او مدبر وو - نو د حکومت کاروبار به په ډير آرام چليدو - ولے د بادشاه په وفات به اکثر فتنے او فسادونه شروع کيدل - او کله کله به دا فسادونه دومره زيات شول چه د شاهي خاندان خاتمه به ئے اوکړه - سلطنت به بل خاندان ته منتقل شو - علاؤالدين خلجي د جاګيردارئ نظام ختم کړے وو - ولے د هغهٔ نه پس دا نظام بيا جاري شو - د لودي پښتنو په وخت کښې هم د دوی ټول سلطنت په جاګيرونو کښې تقسيم وو -

لکه چه مو د بهلول لودي په ذکر کښې وئيلي دي - بهلول چه د دهلي تخت حاصل کړو نو د خپل سلطنت د حفاظت او مزيد توسيع په خيال ئے ديو فرمان په ذريعه د ،، روه،، پښتانهٔ قبائيل هند ته رااوبلل - په دے فرمان کښې هغه دا وئيلي وو چه ،، ما له خدائے پاک د هندوستان تخت راکړو - ولے د دے تخت حفاظت هغه څوک کولے شي چه هغه د قام او قبيلے خاوندوی. پس پښتنو ته پکار دی چه په ډير شير کښې هندوستان ته راشي - او نهٔ صرف د خپل قامی

سلطنت حفاظت اوکړی - بلکه هغې ته توسیع ورکړی او جاګیرونه حاصل کړی ـ د بهلول د دے فرمان په جواب کښې ډیر پښتانهٔ د قبیلو په شکل کښې خصوصًا لوهاني - او - فرملی قبائیل د هند په لوری راغلل - او د توسیع سلطنت په جنګونو کښې د بهلول لودی سره ئې ډیره مرسته اوکړه - چنانچه د خپلې وعدے مطابق بهلول لودی هم خپل نیم سلطنت لوهاني او فرملی پښتنو ته په جاګیر کښې ورکړو - او باقي نیم ئې په نورو پښتنو قبائیلو اووېشلو - چنانچه د لودیانو په عهد حکومت کښې چه پښتانهٔ قبائیل د هند په کومه کومه مزکه اباد شوی وو - د هغې لنډ شان تفصیل په دے ډول دے :-

دلودیانو په قبیله کښې د شاهوخیلو څانګه چه بهلول لودی هم په دے څانګه کښې وو - په دهلی، آګره، کالپی، چاند وار او لکهنئو کښې اباده وه - د لودیانو د قبیلې نورے څانګې لکه یوسف خیل او سارنګ خاني په لاهور او جونپور کښې استوګن وو - فرملی پښتانهٔ په اوده، شاه اباد، تهانیسر او قنوج کښې او لوهاني پښتانهٔ په غازی پور، کانپور، کړه او اټاوه کښې استوګن وو - په دے ډول سوری پښتانهٔ د جنوبي بهار په علاقو کښې په سهسرام، چانده، خواص پور او ټانډه کښې اباد وو - د لودیانو نه پس د سوری پښتنو په عهد حکومت کښې هم په هند کښې اباد پښتانهٔ د خپلې خپلې قبیلې په نوم او شکل کښې استوګن وو - د هغه زمانه کښې د سوری پښتنو د استوګنې علاقې چنار ګوالیار، او دهلی وے - سرواني قبیله په لکهنئو، کانت، ګولا، او تلیر کښې، فرملی قبیله په اوده، او قنوج کښې میشته وه - نیازیان په پنجاب او ملتان کښې استوګن وو - او کرلاني قبائیل د وادئ ګنګا په خطه کښې خصوصًا په خواص پور او ټانډه کښې میشته شوی وو - د هغه شان د ککړو د استوګنې علاقې ملوت، جوالا، نګرکوټ او د جموں غرنیزے علاقے وے -

څه رنګ چه پښتانهٔ په خپل اصلی وطن کښې په مختلفو قبیلو کښې تقسیم او په مختلفو خطو کښې اباد وو - د هغه رنګ دوی په هند کښې هم په خپل قدیم قبیلوی شکل کښې اباد شول - د هند استوګنې، د ماحول تبدیلۍ، او د تمدن ترقۍ د دوی په قبیلوی خصوصیاتو او امتیازاتو کښې هیڅ کمے رانهٔ وستلے شو - دا پښتانهٔ څه رنګ چه په خپل وطن کښې آزاد او خود مختار او د خپل قبیلوی مشر او سردار ماتحت وو - د هغه رنګ په هند کښې هم د دوی د وفادارۍ مرکز د خپلې خپلې قبیلې مشر وو - د بهلول لودی د خوا نه چه په کومے فراخدلۍ د دے پښتنو امیرانو ته جاګیرونه ورکړے شوی وو - د مال و دولت او جائیداد په زیاتوالی د دوی په سرکښۍ او خود سرۍ کښې نوره اضافه هم اوشوه - دا پښتانهٔ امیران به خپل خپل جاګیر کښې قطعی خود مختار او مطلق العنان وو - دا جاګیرونه به دوی د بادشاه له خوا نه په خپل حق کښې د بادشاه مهرباني

او فیاضي نهٔ کښله - بلکه دا به ئې د خپل طاقت او د خپلو مټو صدقه او په دې بنا خپل ذاتي جائیداد ګڼلو - دغه وجه وه چه دوی به د بادشاه د لوری نه په خپل ځان باندې هیڅ پابندۍ منلو ته تیار نهٔ وو - او د خپل طبیعت نه خلاف معمولي خبره به ئې هم په خپلو معاملاتو کښې مداخلت ګڼلو - او د دغې نه به ئې سرکښي کوله - د بهلول لودي او د هغهٔ د عزیزانو ترمینځه تعلق د ورور ولۍ او عزیز ولۍ په اصولو قائم وو - هغهٔ به د خپلو امیرانو په دلجویۍ او رضا مندۍ کښې ډېره مبالغه کوله - او هغوی به ئې د "مسند عالي" وغیره په الفاظو مخاطب کول - که چرې یو امیر به د هغهٔ نه په څه خبره ناراضه شو نو د هغهٔ کور ته به د ننواتې او جرګې په ډول ورتلو - د خپلو امیرانو په مخکښې به هغهٔ چرې په تخت نه کښېناستو - دغه وجه وه چه د ځنې مؤرخینو په خیال کښې د بهلول دا پالیسي قابل اعتراض وه - بهلول واقعي چه د خپلو امیرانو په مقابله کښې تش په نوم بادشاه وو - د بهلول لودي د دې پالیسۍ په نتیجه کښې د پښتنو امیرانو طاقت او حیثیت نور هم زیات شو - ولې بهلول په دې پالیسۍ کښې ګرم هم نهٔ وو - بهلول یو سوچه پښتون وو - د هغهٔ تربیت د پښتنو په معاشره کښې د پښتونولۍ د اصولو مطابق شوې وو - د پښتنو امیرانو په مقابله کښې د یو مطلق العنان حکومت په تشکیل کښې چه کوم خطرات وو - بهلول د هغې نه ښهٔ خبردار وو - هغهٔ ته دا معلومه وه چه سرکښ او د خپلې مرضۍ خاوندان پښتانهٔ امیران چه څومره ازادي د هر څه نه غوره ګڼي - او په دې آزادۍ کښې هیڅ قسمه پابندۍ نهٔ خوښوي - د یو داسې طرز حکومت مرستې او حمایت ته به هرګز تیار نهٔ شي چه په هغې کښې د دوی په آزادۍ کښې فرق او د دوی په اختیاراتو کښې کمے راځي - دویمه وجه دا وه چه د بهلول لودي د حکومت قیام او د دې استحکام د پښتنو امیرانو په حمایت او مرسته موقوف وو - دا حکومت بیخي د پښتنو حکومت وو - او په دې کښې د غیر پښتنو عنصر نهٔ څوڅه تعلق وو - او نهٔ څه مینه وه - په دې وجه بهلول لودي دا غوره اوګڼله چه په خپل سلطنت کښې د خپلو امیرانو سره د داسې رویې او سلوک آغاز اوکړي چه د هغې په وجه د دې امیرانو د زړهٔ د خلاصه همدردي او تعاون په هر وخت او په هره موقع دهٔ ته حاصل وي - د دې نه علاوه په هند کښې د پښتنو تعداد صرف په یو څو لکه افرادو مشتمل وو - او د بې اتفاقۍ او خانه جنګۍ په صورت کښې د دوی په طاقت او تعداد کښې نور هم کمے راتلو - د دې مشکلاتو علاج هغه دا غوره کړو چه د بادشاه د حیثیت او وقار خیال ئې او نهٔ ساتلو - او د باهمي شیرازه بندۍ او اتفاق قائم ساتلو په غرض ئې د خپلو امیرانو حیثیت او وقار ډېر بلند کړو.

بهلول لودي اګرچه به خپلې پالیسۍ په خپل وخت کښې پښتانهٔ امیران رضا او په خپلو کښې متحد او ساتلو - او د هغوی په مرسته ئې خپل سلطنت وسیع او مضبوط کړو - ولې د دې باوجود

هم ددے خبرے نه انکار نهٔ شي کیدے چه دامیرانو د رضا ساتلو په لړکښې بهلول د بادشاه حیثیت او وقار ته لویه صدمه اورسوله ـ هغهٔ خپلو امیرانو ته د بادشاه د سیالانو اوهسرانو دحیثیت ورکولو نه بغیر هم هغوی د خپل ځان نه رضا او باهم متحد ساتلے شول ـ په حیثیت د پښتنو د یو وړومبي بادشاه هغهٔ ته دا مناسب وو چه د بادشاه حیثیت او وقارے ډیر اوچت کړے وے ـ او د پښتنو امیرانو سره ئے هم خپل تعلقات ښهٔ ساتلے وے ـ او دغه شان ئے خپلو جانشینا نو ته بهتر روایات پرے ښودلے وے ـ د خپلو امیرا نو سره د بهلول لودی د دے تعلق نتیجه دا شوه چه دے امیرانو به د جنګ په وخت کښې هغهٔ ته د خپل یو قامي مشر او لیډر په نظر کتل ـ او د امن په وخت کښې به ئے هغه ځان مالک او د اقتدار اعلیٰ خاوند نهٔ ګڼلو ـ د بهلول او د هغهٔ د امیرانو تعلق ګویا داسے وو چه هغه ددے امیرانو د جرګے صدر وی ـ د دے نتیجه دا شوه چه د مرکزی حکومت دننه نور ډیر واړهٔ واړهٔ خود مختاره وحدتونه قائم شول ـ

د دے نه علاوه دے پښتنو امیرانو او جاګیردارانو به د سلطنت په اهمو معاملاتو کښې هم ډیر اختیار لرلو ـ خصوصًا د بادشاه په وفات کیدو او د نوی بادشاه په انتخاب کښې به د مقتدرو امیرانو رائے ته ډیر اهمیت ورکیدے شو ـ او عملاً به دا انتخاب د مقتدرو امیرانو په مرضئ موقوف وو ـ د پښتنو په تاریخ کښې ډیر داسے مثالونه موجود دی ـ چه د هغے نه دا حقیقت ځرګندیږی په دے لړکښې به د مثال په ډول د سکندر لودی د تخت نشینئ ذکر کافی وی ـ

د بهلول لودی د وفات په موقع د هغهٔ امیران د نوی بادشاه د انتخاب د پاره جمع شول. دځنې امیرانو دا خیال وو چه د بهلول مشر ځوئے باربک شاه چه دغه وخت په جونپور کښې وو. بادشاه کول پکار دی ـ ځنې امیران د اعظم همایون په حق کښې وو ـ چه د بایزید ځوئے اود بهلول نمسے وو ـ د نظام خان (سکندر لودی) په بره نه امیران وو ـ او نهٔ ئے چا نوم اخستلو ـ ولے د سکندر لودی مور یوه ډیره قابله میرمن وه ـ هغے ته چه د خپل ځوی معامله نزمه ښکاره شوه. نو دپردے د شانه هغے د جرګے امیرانو ته خطاب اوکړو ـ او د هغوی په مخکښې دخپل ځوئ حقوق او قابلیت ځرګند کړو ـ او د هغوی نه د خپل ځوی د بادشاه کولو خواست اوکړو ـ په دے خبره عیسیٰ خان لودی چه یو مقتدر امیر وو ـ ډیر غصه شو او وے وئیل چه موږ د یو زرګرے ځوئے د پښتنو د بادشاه په ډول نهٔ شو قبلولے ـ (د سکندر لودی مور د هلی د یو زرګر لور وه ـ) او هغے ته ئے بد رد وئیل ـ د عیسیٰ خان په دے سپکه وینا خان خانان فرملی چه د بهلول لودی یو مقتدر امیر وو ـ عیسیٰ خان ته اووئیل چه تا ته د خپل مرحوم بادشاه د ښځو په باب

کښې داسې سپکه وینا کول مناسب نهٔ وو- په دے خبره د عیسیٰ خان او خان خانان ترمینځه تکرار زیات شهٔ او خان خانان قسم او خوړ چه زهٔ به د سکندر لودی د بادشاه کیدو حمایت کووم. چونکه خان خانان یو ډیر بااثره امیر وو- نو نور امیران هم د هغهٔ ملګری شول- او د سکندر د تخت نشینئ فیصله اوشوه- چنانچه سکندر لودی په ډیرے تادئ قصبه جلالی ته اوغوښتلے شو- او د هغهٔ د تخت نشینئ دستوره اوشوه- د سکندر لودی نه پس د ابراهیم لودی د تخت نشینئ په موقع د امیرانو اکثریت د ابراهیم په حق کښې وو- ځکه چه د سکندر په ځامنو کښې ابراهیم لودی د خپل ذهانت، شجاعت او قابلیت په وجه په ټولو امیرانو کښې هردلعزیز وو-

لکه چه اووئیلے شول- د بهلول لودی پالیسئ د هغهٔ د جانشینانو په لار کښې ډیر مشکلات پیدا کړل- چنانچه سکندر لودی د خپلے تخت نشینئ سره سم د هغه مشکلاتو احساس اوکړو کوم چه د امیرانو د هغه په صورته زیات اقتدار په وجه د یو بهترین انتظام او د سلطنت په استحکام کښې حائل وو- ولے د پلار په نسبت سکندر لودی د تدبر او سیاسی دوراندیشئ نه لویه برخه لرله- هغه د امیرانو د طاقت په کمولو او د بادشاه د اختیار او اقتدار زیاتولو کوشش شروع کړو- ولے په دے لړکښې هغهٔ د ډیر احتیاط نه کار واخست- هغه به هم د خپل پلار په شان د لویو، لویو امیرانو په موجودګئ کښې په تخت نهٔ کښیناستلو- او د مقتدره او بااثره امیرانو استقبال ته به هم وتلو او د هغوی د عزت افزائی په غرض به د خپل اس نه هم راکوزیدو- ولے د دے سره سره هغهٔ داسے اقدامات شروع کړل چه د هغے په نتیجه کښې د امیرانو په اختیاراتو کښې کمے راغلو- هغهٔ د امیرانو د حساباتو د معائینے او جانچ پړتال په حقله احکامات جاری کړل- ولے هغهٔ به خبره نهٔ زیاتوله- ولے د ضرورت او موقع مطابق به ئے نرومرو په خپلو احکاماتو ضد او اصرار نهٔ کولو- هغهٔ خپلو امیرانو ته د اجازت ورکړے وو چه څه رنګ او په کومه طریقه دوی ته اسانی وی په هغه طریقه ډِ دوی خپل حسابونه د محکمه مال د اهلکارانو سره فیصله کوی- ولے دا امیران د دومره معمولی پابندیانو منلو ته هم نهٔ تیاریدهٔ- او د بادشاه دا احکامات ئے په خپلے آزادئ کښې مداخلت او په خپلے وفادارئ باندے ئے بے اعتمادی اوګڼله- او د دے احکاماتو برخلاف ئے خپل خفګان ظاهرکړو- او د دے مخالفت ئے شروع کړو- اګرچه سکندر لودی په خپل قابلیت او مستعدئ دا مخالفت په اسانه ختم کړو-

د دوؤ متضاد وخیالاتو د تصادم آغاز چه د سکندر لودی په عهد حکومت کښې شوے وو- د ابراهیم لودی په عهد حکومت کښې په هغے کښې ډیر جوش او شدت پیدا شو- د ابراهیم په عهد کښې د پښتنو امیرانو غیر معمولی طاقت او اقتدار د پښتنو د مرکزی سلطنت د پاره د یو

واضح خطرے شکل اختیار کړے وو۔ دغه وخت کښے دے امیرانو د هغهٔ اقتدار ته په څرګنده ټتون او ټپولو- او د شاهی احکاماتو خلاف ورزی ئے شروع کړه۔ په دے لړکښے به صرف یو مثال کافی وی۔

د رانا پرتاب په مهم باندے ابراهیم لودی خپل یو امیر، میاں مکین، مقرر کړے وو۔ د دے نه وړاندے د سکندر لودی په وخت کښے میاں حسین خان فرملی نومے یو امیر د فوځونو سپه سالار وو۔ په دے مهم کښے میاں حسین خان د میاں مکین ماتحت وو۔ میاں حسین خان دا تقرری خپله بے عزتی اوګڼله۔ او د ابراهیم د فوځ نه رانا پرتاب ته لاړ او د هغهٔ په ملګرتیا کښے د خپلو پښتنو فوځونو سره او جنګیدو۔ او د دے نتیجه دا شوه چه پښتانهٔ د راجپوتو په مقابله کښے اوتښتیدل۔ اګرچه د دے اقدام نه د میاں حسین مقصد دا وو چه په ابراهیم باندے د هغهٔ د انتخاب غیر موزونیت ثابت کړی۔ ځکه چه د دے نه پس هغهٔ میاں مکین ته په پټه دوباره راجپوتو باندے د حملے دعوت ورکړو۔ او په خپله ئے هم په راجپوتو حمله اوکړه۔ او په دے ډول راجپوتو شکست اوموند۔ لیکن د میاں حسین د دے اقدام نه دا صفا معلومیږی چه د ابراهیم امیرانو د خپل خواهش او مرضئ په مقابله کښے د بادشاه د احکاماتو پرواه نهٔ ساتله۔ او په دے لړکښے بهٔ د هر خطرناک اقدام کولو نه دریغ نهٔ کولو۔

ابراهیم لودی د ډیرو اوچتو خیالاتو خاوند وو۔ افسوس دے چه اکثرو مؤرخینو د هغهٔ سره انصاف نهٔ دے کړے۔ او صرف د هغهٔ نقائص ئے څرګند کړی دی۔ د تخت نشینئ سره سم هغهٔ دا محسوسه کړه چه که چرے د پښتنو امیرانو په اختیاراتو پابندی عائد نهٔ کړے شی۔ نو نهٔ سلطنت استحکام موندلے شی او نهٔ په موزونه طریقه د حکومت انتظام چلیدے شی۔ د بادشاه د حیثیت او اقتدار په باب کښے ابراهیم لودی د مخصوصے نظرئے خاوندوو۔ د هغهٔ په خیال کښے بادشاه د اقتدار اعلیٰ مالک او د سلطنت یو غیر جانبدار سربراه ګڼړ وو۔ دغه وجه وه چه د تخت نشینئ نه پس هغهٔ دا اعلان اوکړو چه د بادشاه نهٔ دوستان وی او نهٔ خپلوان بلکه ټول د بادشاه نوکران وی۔ او د خپل حیثیت او قابلیت مطابق سلوک مستحق۔ اګرچه د اکثرو مؤرخینو په خیال کښے د هغهٔ دا وینا د هغهٔ تکبر، خام خیالی او د خپل پلارنیکهٔ د پالیسئ نه انحراف معلومیږی۔ ولے حقیقت دا سے نهٔ دے۔ د هغهٔ دا خیالات د دے آئینه دار دی چه د بادشاه په حیثیت چه کوم فرائض په هغهٔ عائد کیدل هغه د هغے نه ښهٔ خبردار وو۔ د هغهٔ دا مقصد وو چه هغه د خپل سلطنت د ټول رعیت بادشاه دے۔ قطع نظر د دے نه چه دا څوک او د کوم توک دی۔ د هغهٔ دا خواهش وو چه خپل رعیت ته هغه آرام واسائش اورسوی کوم چه

د یو منظم او پابند قانون حکومت په سیوری کښې حاصلیدے شي۔

دا بلکل ظاهره ده چه د ابراهیم د ا قسم خیالات د پښتنو امیرانو د بنیادی خیالاتو سره په ډیر شدت سره متصادم کیدل۔ د هغهٔ امیران په اله اسانه د خپلو اختیاراتو پرے ښودلو او په خپلو ځانونو قانونی پابندیو منلو ته تیار نه وو۔ د ابراهیم دے خیالاتو خپل امیران د هغهٔ بدترین دشمنان کړل۔ او هغه امیران چه په ابتداء کښې د هغهٔ د تخت نشینۍ ملګری وو۔ اوس د هغه لرکولو په تابیا کښې لګیا شول۔ د بده مرغه ابراهیم هم په خپلو خیالاتو کښې ډیر متشدد او د خپلو ارادو نه په هیڅ صورت کښې په شا کیدونکے نهٔ وو۔ هغهٔ د خپلو امیرانو د مخالفت د مقابلے د پاره د طاقت د استعمالولو اراده اوکړه۔ او هغه په خپل مقصد کښې کامیاب هم شو۔ ولے په بل لور د ابراهیم مخالف امیران هم په خپل هود ټینګ وو۔ آګر ځو دوی د ابراهیم په مقابله کښې څو پاتے راغلل۔ ولے د ابراهیم نه ئے د بدل اخستو د پاره ډیره څو فناکه لاره اختیار کړه۔ د خپلو ذاتی مفادو او د ذاتی انتقام په جوش کښې دوی د پښتون قام مجموعی مفاد قربان کړل۔ او بابر ته ئے په هند باندے د حملے دعوت ورکړو۔ او د غه شان ئے د پانی پت په میدان کښې په خپل لاس د پښتنو سلطنت ختم کړو۔ په دے ډول اګرچه دوی د خپل هغه بادشاه نه خوفناک بدل واخست۔ کوم چه د دوی د روایتی خیالاتو په ختمولو کښې کوشان وو۔ ولے په دے لوبه کښې دوی د غوبرګیتلو په ځائے سرهم باٹلود۔ او دا د پښتنو یو خاصیت دے چه په داسے حالاتو کښې په چتی پیسے باز پربردی۔

دے کښې شک نشته چه ابراهیم یو ذهین او قابل حکمران وو۔ د هغهٔ دا اراده وه چه په خپل سلطنت کښې د بهترینو اصولو په رهنمائیٔ کښې حکومت اوکړی۔ ولے د دے مقصد د حصول د پاره چه هغهٔ کومه لار اختیار کړی وه هغه هم خطرناکه او د نقائصو نه خالی نهٔ وه۔ د بده مرغه په ابراهیم کښې نهٔ څو د خپل نیکه په شان مصلحت شناسی وه او نهٔ د خپل پلار په شان تدبر او مستعدی۔ هغهٔ ته دا مناسب وو چه د خپل پلار په شان ئے د احتیاط او تدبر چاله اختیار کړے وے۔ ولے په هغهٔ کښې دا غټ عیب وو چه هغه په خپلو اصولو کښې ډیر سخت وو۔ او په یوه خبره کښې به ئے هم د روغے جوړے او صلح صلاحیت ګنجائش نهٔ پرے ښودلو۔ هغهٔ به په خپلو احکاماتو کښې هم د ډیرے جلد بازئ نه کار اخستلو۔ او د خپلو امیرانو د احساساتو او جذباتو د قدر کولو صلاحیت ئے هم نهٔ لرلو۔

په بل لور د هغهٔ امیران هم په خپلو خیالاتو او روایاتو کښې ډیرے سلیبنه او سخت وو۔ په هند کښې د پنځوسو شپیتو کالو اوردے استوګنے، د ماحول تبدیلئ او د حکومت د قوانینو

پابندئ هم د هغوی په قبائلي خصوصیاتو او امتیازاتو کښې څه کمے نهٔ وو راوستلے - دوی به هم په پوزه پخ نهٔ پرے ښودلو - او د قانون پابندئ به ئے په خپله آزادئ کښې مداخلت گڼلو - په دے صورت کښې د دوؤ متضادو خیالاتو او نظریاتو تصادم ناگزیر وو - او د دے تصادم نتیجه د پانی پت په اول جنگ کښې ظاهره شوه -

د پانی پت د اول جنگ (سنه ۱۵۲۶ء) نه پس پښتانهٔ په یو دم د اقتدار نه محرومه او در په دیکه شول - هغه پښتانهٔ امیران چه د ابراهیم سره د دشمنئ په وجه ئے بابر دهندوستان حملے ته پاروّلے وو - څه خود پانی پت د جنگ نه اول د بابر ملگری شوی وو - او د ابراهیم څنے جاگیردارانو د پانی پت د جنگ نه پس د بابر اطاعت اومنلو - او ډیر پښتانهٔ امیران د بابر په فوځونو کښې هم شامل شول - لیکن کومو امیرانو چه د خپل قامی بادشاه د لوری نه د قانون پابندئ په خپله آزادئ او اختیاراتو کښې مداخلت گڼلو او په دے وجه ئے د هغهٔ نه بغاوت کړے وو - هغه خلقو د بابر حکومت او اقتدار ته په اسانه کله غاړه کیښودلے شوه - اگرچه د حالاتو تقاضو او خپلو سیاسی ضروریاتو او مجبوریتو بابر د پښتنو سره د رواداری په سلوک مجبور کړے وو - لیکن د دے باوجود پښتنو د بابر د حکومت د اقتدار سره موافقت او هم آهنگی اختیار نهٔ کړے شوه - او ډیر زرئے د هغهٔ نه هم بغاوت اوکړو - څنے د راجپوتو ملگری شول - او څنو په خپل مینځ کښې په عارضی ډول اتحاد اوکړو - او د بابر سره ئے څو ناکامیابه جنگونه اوکړل - لیکن خوند ئے او نهٔ کړو - دغه مایوس او شکست خورده امیران اوس د شیرشاه خوا ته غونډ شول - چه په دغه ورځو کښې د بهار په علاقه کښې د اقتدار خاوند وو - په یو لور د دے امیرانو په راتلو د شیرشاه په طاقت کښې ډیره اضافه اوشوه - او بل لور دا امیران هم د پنځلس کاله سرگردانئ او در په دیکو گرزیدلو په وجه په خود شوی وو - شیرشاه د خپلو قائدانه صلاحیتونو په وجه دا ټول په یو مرکز راغونډ کړل - او د یو وسیع سلطنت په تشکیل کښې کامیاب شو - -

دا یو فطری خبره ده چه د دے عظیمے کارنامے د سرانجامولو په وجه پښتنو امیرانو او پښتون اولس شیرشاه ته د خپل یو لوئے محافظ او د خپل قامی ننگ وناموس د یو نگهبان درجه ورکړه - او د دے په نتیجه کښې ئے خپلے وفادارئ او خپل ټول قوتونه د شیرشاه ذهانت او اهلیت ته اوسپارل - په بل لور شیرشاه هم یو ډیر پښتون نواز انسان وو - د پښتنو سره د هغهٔ ډیره مینه وه - او په هره ممکنه طریقه به ئے د هغوی خبرگیری او پالنه کوله - چنانچه د تاریخ شیرشاهی مؤرخ عباس سروانی د دے خیال اظهار کوی چه د سلطنت د حصول نه

پس شیر شاه په دومره لویه پیمانه خپلو امیرانو ته جاګیرونه ورکړل. او په داسې فیاضۍ ئې پښتنو ته انعامونه او ماجبونه ورکړل چه هر یو پښتون خوا که هغه په هندکښې وو او که په روه کښې شتمن شو.

د شیر شاه شاندارو فتوحاتو د هغهٔ قائدانه صلاحیتونو او د هغهٔ د توسیع سلطنت جنګونو د پښتنو امیرانو خیالات د خپلو قبیلوی رقابتونو او بغضونو په باب کښې رپ کړل. د نوی سلطنت خوشحالۍ او د خپل اقتدار و مال و دولت دوباره حصول پښتانهٔ امیران مسحور کړل. او هغوی د دے نه هېروے پرواه وو چه په دے دوران کښې په چپه خُله شیر شاه په ډیر احتیاط او دوراندیشۍ سره د پښتنو امیرانو د طاقت په کمولو او د مرکزی حکومت په استحکام کښې کوشان وو. دا خبره د هغهٔ د انتظامی پالیسۍ او د هغهٔ دځنې اصلاحاتو نه ثرګنده ده. د خپل سلطنت په پرګنو او سرکارونو کښې تقسیمول، د خپل سلطنت د زمکو پیمائش کول. د محکمهٔ مال قیام د مالیې د وصولۍ د پاره یو مکمل نظام قائمول. د فوځونو په باب کښې مختلف قوانین اجرا کول. د اسونو د داغ طریقه شروع کول. او داسې نور ډیر اصلاحات د دے خبرے واضح ثبوت دے چه شیر شاه په خپل سلطنت کښې د یو مضبوط مرکزی حکومت په تعمیر کښې په چپه خُله لګیا وو. او د هغهٔ دا خواهش وو چه ټول انتظامی معاملات د بادشاه په ذاتی نګرانۍ کښې راولی. ولے سره د دے چه شیر شاه په خپلو پښتنو امیرانو کښې ډیر مقبول وو. او هغهٔ ته د خپلو امیرانو پوره پوره تعاون، اعتماد او وفاداری حاصله وه. بیا هم هغهٔ هر قدم په ډیر احتیاط پورته کولو. او کوم ځائے به چه ضرورت وو هلته به ئے د نرمۍ او رعایت نه کار اخستلو. هغهٔ خپلو امیرانو ته په ډیرے دریا دلۍ جاګیرونه ورکړی وو. او هغوی ته ئے په خپلو جاګیرونو کښې د فوځونو او درولو اجازت هم ورکړے وو. هغهٔ اعظم همایون هیبت خان نیازی د پنجاب او ملتان دواړو صوبو وائسرائے مقرر کړی وو. اګرچه د هغهٔ دا خواهش هم وو چه د داسې طاقتور امیر په داسې سرحدی صوبو پرے نښودل د خطراتو نه خالی هم نهٔ دی. او د هغهٔ لرے کول ئے هم مدنظر وو. په دے ډول شیر شاه خپل یو بل امیر اسماعیل خان ته هم د اجازت ورکړے وو چه هغه دِ په خپل جاګیر کښې د "اسونو د داغ" نه معاف وی. ځکه چه دے امیرانو د خپلو اسونو داغول نهٔ خوښول.

د دے نه دا حقیقت نهٔ ظاهرېږی چه شیر شاه به هرو مرو د خپلو خواهشاتو او احکامو په تعمیل او تکمیل اصرار نهٔ کولو. او د خپلو امیرانو د خیالاتو او جذباتو به ئے هم

قدر کولو۔ دغه وجه وه چه د خپلو امیرانو او د هغهٔ ترمینځه د تصادم یوه موقعه هم نهٔ وه پیښه شوی۔ ولے د هغهٔ جانشین او ځوی اسلام شاه د مرکزی حکومت د مضبوطیا او استحکام په لړکښے د خپل پلار خیالات انتها ته اورسول۔ د ابراهیم لودی په شان د باشاهٔ په حقله اسلام شاه هم مخصوص نظریات لرل۔ دغه وجه وه چه د اسلام شاه په عهد حکومت کښے د متضادو خیالاتو تصادم بیا بدترین شکل اختیار کړو۔ او آخری نتیجه ئے د پانی پت په دوئم جنګ کښے ظاهره شوه۔

# په مشرقي هندوستان کښې د پښتنو سلطنت

اګر چه د پاني پت دويم جنګ مغل د اګرے او دهلي مالکان کړی وو. ولے بيا هم د پښتنو په قبضه کښې د بنګال، بهار او مالوے په شان زرخيزه او وسيع علاقے لا پاتے وے. او په دے علاقو کښې د پښتنو طاقت ډېر مضبوط وو. دغه وجه وه چه د پاني پت د جنګ ګټلو نه پس سمدستي اکبر د بنګال و بهار تسخير ته ليواله شو. ولے هغه په دے خپله اراده کښې سمدستي ځکه کامياب نۀ شو چه څه خو په شمالي هند کښې هغۀ ته ډېر جنجالونه وړپيښ وو او اهمه وجه ئے دا وه چه په مشرقي هند کښې د سليمان کرلاني غونډے يو مدبر پښتون حکمران وو. او هغه په خپل تدبر د اکبر ټولے منصوبے ناکامياب کړے وے. ولے هرکله چه په ۱۵۷۲ء کښې سليمان کرلاني وفات شو. نو اکبر ته د بنګال او بهار تسخير آسان شو. او هغه د ګڼو کالو د کوششونو نه پس په ۱۵۷۶ء کښې په خپل مقصد کښې کامياب شو. او د پښتنو اصلي سياسي اقتدار په هند کښې ختم شو.

د بنګال و بهار سره د پښتنو تعلق ډېر قديمي او ژوانے وو. هم دغه علاقے وے چه دلے د دولسمے صدئ په آخر کښې بختيار خلجي په اول ځل د پښتنو يو آزاد حکومت قائم کړے وو. او د دے نه پس تقريبًا د دے علاقو د هر حکمران په فوځونو کښې پښتون عنصر د قسمت آزما او داؤ طلبه فوځيانو په حيثيت کښې شامل وو. په پنځلسمه صدئ کښې هم د بنګال د حکمرانانو په فوځونو کښې پښتانۀ د زرګونو په شمير کښې شامل وو. د پاني پت د اول جنګ نه پس هم ځنے پښتانۀ اميران چه د ابراهيم لودي يو ورور محمود لودي پکښې هم شامل وو. سره د آل و عيال بنګال ته تلے وو. او د هغه وخت بادشاه سيد نصرت شاه ورله د استوګنے د پاره څه علاقے د جاګير په شکل کښې ورکړی وے. د شير شاه د اقتدار آغاز هم په دے خطه کښې شوے وو. او دغه خطے د پاني پت د دوئم جنګ نه پس د ټولو هندی پښتنو د پاره د يو داسے محفوظ فصيل حيثيت اختيار کړے وو چه د هغې د ننه د دوی سياسي آزادي برقراره او د دوی قامي ننګ و ناموس محفوظ وو.

لکه چه په تیرو پاڼو کښې وئیلې شوی دی د عادل شاه د تخت نشینئ نه پس د بنګال ګورنر محمد خان سور د ځانه خود مختارئ اعلان اوکړو - او د شمس الدین محمد شاه غازی په نوم د بنګال بادشاه شو. خطبه او سکه ئې په خپل نوم جاری کړه - او بیا د دهلی د سلطنت د راستونولو په تابیا کښې ګکیا شو. په دے لړ کښې هغه د سنه ۱۵۵۵ء پورے په بهار او بیا په جونپور هم قبضه اوکړه - او د غه شان هغه د یو وسیع سلطنت مالک شو. د دهلی د سلطنت په باب کښې هغهٔ عادل شاه خپل رقیب ګڼلو - نو د هغهٔ سره د فیصلے په نیت د یو لوئ فوځ سره را روان شو - او د عادل شاه د جرنیل هیمو د لاسه اووژلے شو - او د دے په نتیجه کښې د محمد شاه ټول سلطنت د عادل شاه په قبضه کښې راغے -

د محمد شاه امیرانو د هغهٔ ځوئے خضر خان خپل بادشاه او ټاکلو - خضر خان د بهادر شاه لقب اختیار کړو - او په بنګال باندے ئے حمله اوکړه - او بیا ئے ترلاسه کړو - د دے نه پس د خپل پلار د قتل د بدل اخستلو په غرض د یو لوئے فوځ سره د عادل شاه مقابلے ته را روان شو. په دے موقع تاج خان کرلاڼے چه د عادل شاه نه باغی وو - د هغهٔ ملګرے وو - په اپریل سنه ۱۵۵۷ء کښې د بهادر شاه او عادل شاه ترمینځه جنګ اوشو - چه په هغ کښې عادل شاه اووژلے شو - او د بهار ټوله علاقه د بهادر شاه په قبضه کښې راغله - بهادر شاه په بهار کښې د خپل لوری نه تاج خان کرلاڼے ګورنر مقرر کړو - او په خپله بنګال ته لاړ - بهادر شاه په سنه ۱۵۶۰ء کښې وفات شو او د هغهٔ په ځائے د هغهٔ ورور جلال خان د جلال شاه په نامه تخت نشین شو -

جلال شاه یو هوښیار بنیادم وو - هغه د مغلو سره د ناکامیابه جنګونو نه ځان او ژغورلو ولے ډیر زر بیخ په سنه ۱۵۶۳ء کښې وفات شو - د دهٔ په مرګ بیا په بنګال کښې اړے ګړے پیدا شوے - چنانچه تاج خان کرلاڼي چه د بهار ګورنر وو - په بنګال حمله اوکړه - او په بنګال و بهار د واړو صوبوځ قبضه اوکړه - ( سنه ۱۵۶۴ء

# په مشرقي هِند کښې د کرلاڼي پښتنو سلطنت

د لودیانو د سلطنت په زمانه کښې په هندوستانی پښتنو کښې کرلاڼي قبیله غیر معروفه وه. ولے د سوری خاندان په عهد حکومت کښې د دے قبیلے ډیر شهرت اوموندلو - د دے شهرت باعث د دے قبیلے یو دوه نومیالی غړی تاج خان او سلیمان خان وو - چه د جمال خان کرلاڼي ځامن وو.

د پښتنو په تاریخ کښې په اول ځل د تاج خان او سلیمان خان نومونه د شیر شاه د جرنیلانو په حیثیت د قنوج په جنګ کښې لیدلے شی - دا جنګ شیرشاه د مغل بادشاه همایون برخلاف ګټلے

وو ـ د دوی د هغه خدماتو په اعتراف کښے کوم چه دوی د شیر شاه د پاره کړی وو ـ دشیر شاه د لوری نه په خواص پور، ټانډه او د جنوبي بهار په علاقو کښے جاګیرونه ورکړی شوی وو ـ دا دواړه ورونه ډیر هوښیار او د سیاسی دوراندیشۍ خاوندان وو ـ شیر شاه په خصوصیت سره د تاج خان د قابلیت نه متاثر وو ـ او هغه ئے د خپل څوی جلال خان چه وروستو د اسلام شاه په نامه د شیر شاه جانشین شو ـ اتالیق مقرر کړے وو ـ

د اسلام شاه په دور کښے تاج خان د ډیر اقتدار خاوند وو ـ په ټولو امیرانو کښے دغه یو سړے وو چه د اسلام شاه حد په صورته اعتباری وو ـ دغه وجه وه چه د خپل مرګ په وخت کښے هم دے د خپل نابالغ څوی فیروزشاه سرپرست مقرر کړو ـ

چونکه تاج خان د اسلام شاه قابل اعتماد دوست وو ـ په دے وجه د اسلام شاه د مرګ نه پس هغه امیران چه د اسلام شاه زخم خورده وو ـ د تاج خان په مخالفت کښے د ټولو نه وړاندے وو ـ او هرکله چه عادل شاه د اسلام شاه په تخت قبضه اوکړه ـ نو د تاج خان د پاره خبره نوره هم ګرانه شوه ـ ولے چونکه تاج خان یو ډیر مدبر او د لوئے اقتدار خاوند وو ـ نو عادل شاه په ځرګنده هغهٔ سره ورانے ته تیار نهٔ وو ـ ولے هرکله چه د عادل شاه د رویے په نتیجه کښے په ټولو امیرانو کښے الغاؤ تلغاؤ پیدا شو نو تاج خان هم په چپه خُله د عادل شاه د دربار نه اوتښتیدهٔ ـ او جنوبي بهار ته لاړ ـ په اپریل سنه ۱۵۵۷ء کښے چه د محمد شاه سور څوئے بهادرشاه د عادل شاه برخلاف حمله اوکړه ـ نو دغه وخت تاج خان هم د هغهٔ ملګرے وو ـ او د عادل شاه د مرګ نه پس چه بهادرشاه په بهار قبضه اوکړه نو تاج خان ئے د دے صوبے ګورنر او ټاکلو ـ په سنه ۱۵۶۴ کښے تاج خان په بنګال حمله اوکړه ـ او دغه شان په بنګال او بهار دواړو صوبوئے قبضه اوکړه ـ او په خپل سلطنت کښے ئے شامل کړے او په دے خطه کښے د کرلاني پښتنو د سلطنت بانئ شو ـ

تاج خان یو مدبر او چالاک سیاستدان وو ـ د بنګال و بهار قبضے ته چه اکبر څومره لیواله وو ـ تاج خان ته د هغې پوره پوره احساس وو ـ په دے وجه هغهٔ د ابتدا نه دا پالیسی اختیار کړه چه ترڅو پورے په دے خطه کښے خپل سلطنت په هر لحاظ سره مضبوط نهٔ کړی ترهغې د مغلو سره زورآزمائی کول بے فائدے او د خطرے نه خالی نهٔ دی ـ دغه وجه وه چه هغهٔ د مغل حکومت د مشرقي صوبو واشرائے خان زمان سره دوستانه تعلقات قائم کول ـ او د دے خبرے هم ډیرا مکان معلومیږی چه شاید د بنګال په فتح کولو کښے به دهٔ هم د تاج خان سره څه مدد کړے وی ـ

ولې تاج خان ډېره موده دخپل نوی تشکیل کړی سلطنت خواږهٔ او نهٔ لیدل. او د بنګال د فتح نه یو څو میاشتې پس هغه په ۱۵۶۵ء کښې وفات شو. ټول هم عصر مؤرخین د تاج خان د قابلیت، دانشمندۍ او تدبر او اعتراف کوی. د بداؤنی په قول تاج خان په ټولو پښتنو کښې زیات عاقل، مدبر او عالم فاضل انسان وو.

د تاج خان د وفات نه پس د هغهٔ ورور سلیمان د هغهٔ جانشین شو. په مشرقی هندوستان کښې د سلیمان عهد حکومت د پښتنو د سلطنت یو ځلانده دور دے. سلیمان یو ډیر عاقل، مدبر او هوښیار سیاست دان وو. هغهٔ په خپل عقل و تدبر د پښتنو د یو مقتدر سلطنت په تشکیل کولو کښې کامیاب شو. کومه دانشمندانه پالیسی چه د هغهٔ ورور تاج خان شروع کړی وه. سلیمان هغ ته نور استحکام هم ورکړو. هغهٔ د مغل واشراف خان زمان سره خپل سیاسی روابط نور هم خوشګوار کړل. او د خپلې دانشمندانه پالیسۍ په برکت ئې د اکبر غوندے طاقتور مخالف چه د پښتنو د سیاسی اقتدار زوال ته حد په هورته لیواله وو په مقابله کښې د پښتنو عزت او حیثیت محفوظ اوساتلو. او که چرے د هغهٔ جانشین هم د هغهٔ په شان قابل او د هغهٔ په دانشمندانه پالیسۍ عامل وے نو د خپل ټول شان و شوکت او اقتدار باوجود به هم دا د اکبر د پاره ګرانه وه چه هغهٔ د پښتنو نه د بنګال و بهار خطې فتح کړے وے.

وخت او موزون حالاتو د یو مقتدر او مضبوط سلطنت په تشکیل کښې د سلیمان کرلاني ډیر امداد اوکړو. دا داسے زمانه وه چه د شیرشاه د قبیلې مختلف څانګے اول په خپلو کښې او بیا د مغلو سره د ناکامیابه خونړو جنګونو نه پس ختے شوے. او پښتون اولس به عموی ډول بے کوره او بے مشره پاتے وو. د غه ټول پښتانهٔ چه د سیاسی اقتدار نه محروم شوی. د بے سرو سامانۍ او پریشانۍ په حالت کښې ګیر او د یو محفوظ پناه ګاه په تلاش کښې سرګردان وو. د سلیمان کرلاني خوا ته راغونډ شول. او نهٔ صرف دوی د پناه ځائے اوموند. بلکه د سلیمان طاقت او جمعیت هم په دے خلقو زیات شو. او بیا و هم هغه شان حالات پیدا شول. کوم چه د همایون د تخت نشینۍ نه پس د شیرشاه د پاره پیدا شوی وو.

سلیمان کرلانے یو ډیر پرهیزګار، علم دوست او عادل حکمران وو. د بهار په علاقه کښې د یو جومات په یوکتبه کښې هغهٔ په عدل او انصاف او پرهیزګارۍ کښې د سلیمان ثانی په الفاظو یاد شوے دے. او ټول هم عصر مؤرخین د هغهٔ د دے صفاتو ستائینه کوی. هغه نهٔ صرف یو پرهیزګار، پابند شریعت او منصف حکمران وو. بلکه د عالمانو او

فاضلانو هم ډیر قدردان وو - او د عالمانو په صحبت کښې به ډیر خوشحال وو - د بداونی په قول اکبر چه د سلیمان د عالمانو د قدردانئ او په دے لړ کښې د هغهٔ د سرگرمیو نه خبر شو - نو د هغهٔ هم دا خواهش پیدا شو چه هغه هم یو داسے عبادت خانه جوړه کړی چه په هغ کښې علماء فضلاء په فلسفه او مذهبي مسائیلو بحثونه کوی -

د سلطنت په معاملاتو کښې سلیمان ډیرے تحصبه وو - په دے لړ کښې هغه د سوری خاندان د بادشاهانو په شان د غیرمسلم افرادو سره ډیر فیاض او رواداروو - او هغوی ته به ئے په خپل سلطنت کښې د ذمه وارئ اهمے عهدے هم ورسپارلے - چنانچه د هغهٔ په وخت کښې یو بنگالے هندو رامانندا گواها او د هغهٔ ګامن بهابا ننداګوننداا او سبانندا د سلطنت په اهمو عهدو مقرر وو - وروستو بهابا ننداا وګو ننداا د وزارت عهدو ته هم اورسیدل - او سبا ننداا د محکمه مال افسر اعلیٰ مقرر شو - د بهابا نندا هغوئے سری هاری د سلیمان د خوی داؤد د وړوکوالی ملګرے او دوست وو - چه د سلیمان نه پس داؤد تخت نشین شونو د سری هاری په اقتدار او عزت کښې حد په هورته اضافه اوشوه - داؤد هغه ته د بکرما جیت خطاب ورکړو - او د وزارت اعلیٰ په عهده ئے اوټاکلو - دے هندو وزیر د مال په محکمه کښې دومره هندوان داخل کړل چه په ټوله محکمه هم د دوی قبضه وه - داؤد به په دے خپل هندو وزیر حد په هورته اعتماد کولو - او د هغهٔ مشورو ته به ئے د قدر په نظر کتل - ولے دا ډیره افسوسناکه خبره ده چه دے هندو وزیر د خپل محسن داؤد سره انتهائی شرمناکه غداری اوکړه - او نهٔ صرف داؤد دے تباه کړو بلکه د پښتنو د سیاسی اقتدار بیړئ هم په مکمل طور ډوبه کړه - د دهٔ د دے غدارئ ذکر به وروستو راشی -

د سلیمان د عهد حکومت اهمه واقعه د اړیسے د صوبے فتح او د بنګال په حکومت کښې د هغ شمولیت دے - د اړیسے صوبه د یو هندو راجا په قبضه کښې وه - ابراهیم خان سور چه ذکر ئے ګوځله وړاندے تیر شوے دے - چه د هرځائے نه نا امیده او د سیاسی اقتدار نه محروم شو نو هغهٔ دے راجا سره پناه اونیوله - او دے راجا هغهٔ ته په دے وجه پناه ورکړی وه چه د شاهي خاندان د یو فرد په حیثیت د هغهٔ نه د بنګال او بهار په فتحه کولو کښے کار واخلی - په بل لور اکبر هم دا خواهش لرلو - چه د شطرنج د یو مهرے په حیثیت کښې ابراهیم خان د بنګال حملے ته اوپاروی - او دغه شان د سلیمان سلطنت ته خطره پیدا کړی - سلیمان هم دد دے وضعیت نه بنهٔ خبردار وو - او هغهٔ دا اراده کړی وه چه د سازشونو دا جاله هغه و ورانه کړی - ولے د یو موزونے موقع په تلاش کښے وو - دا موقع هغهٔ ته زر

په لاس ورغله. په سنه ۱۵۶۷ء کښې چه اکبر د چتوړ په مهم کښې مصروف وو. سلیمان د خپل ځوی بایزید او د خپل یو جرنیل کالا پهاړ په ماتحتۍ کښې د اړیسې د تسخیر په غرض یو فوځ اولیږلو او د یو خونړی جنګ نه پس اړیسه فتحه شوه او د بنګال په سلطنت کښې شامله شوه. د دې صوبې په شمولیت نهٔ صرف د سلیمان سلطنت وسعت بیا موند بلکه په مالی لحاظ سره هم ډیر مستحکم شو. د اړیسې په علاقه هغهٔ خپل دیانت دار او وفادار وزیر "لودی" ګورنر اوټاکلو او د "پوری" حکومت ئې خپل یو جرنیل قتلو خان لوهانی ته ورکړو.

لکه چه وړاندې وئیلی شوی دی اکبر د خپل سلطنت د اغاز نه دا هوډ نیولے وو چه پښتانهٔ په هر دستور چه کیدے شی د سیاسی اقتدار او په هند کښې د باعزته او خود دار ژوند تیرولو نه محروم کړی. د دې مقصد د حصول په لړکښې به هغهٔ یو موقع هم نهٔ خطا کوله. بلکه کله کله به ئې هیڅ بې هیڅه د تصادم موقع پیدا کړے. د سلیمان مقتدر سلطنت د هغهٔ په سترګو کښې ازغ وو. او د دې ختمولو ته لیواله وو. په بل لور سلیمان هم ډیر دوراندیش او چالاک سیاستدان وو. هغهٔ د خپل سلطنت د استحکام او وسعت د پاره دا ضروری ګڼله چه ترڅو مره کیدے شی د مغلو سره زور ازمایئ نه ځان اوژغوری. په دے لړکښې هغهٔ ډیره محتاطه پالیسی اختیار کړه. سره د دے چه د هغهٔ په سلطنت کښې د بنګال، بهار او اړیسې غوندے وسیع، زرخیزه او آبادے صوبې شاملے وے. د هغهٔ د سلطنت مالی وسائل ډیر وسیع او د هغه فوځی طاقت ډیر مضبوط وو. هغهٔ په خپل سلطنت کښې یو خود مختاره بادشاه وو. او اصولاً او قانوناً ئې دا حق لرلو چه خپل ځان ته بادشاه اووائی. او په خپل سلطنت کښې خطبه او سکه په خپل نوم جاری کړی. د دے ټولو خبرو باوجود هغهٔ ته چونکه دا معلومه وه چه اکبر د تصادم د پاره محض بهانه لټوی. نو هغهٔ د دے خبرو نه ځان اوژغورلو. هغهٔ د خپل ځان د پاره د بادشاه په ځائے د "حضرت اعلیٰ" خطاب اوټاکلو. دا خطاب شیرشاه هم په سنه ۱۵۳۵ء کښې د همایون په وخت کښې اختیار کړے وو. په خپل سلطنت کښې خطبه او سکه هم د اکبر د نامے جاری کړه. او د دے نه علاوه هغهٔ د مغل واسرائے خان زمان سره هم ډیر خوږ تعلقات قائم کړل. دا واسرائے د اکبر د استعماری پالیسئ نه برخلاف وو. او په دماغ کښې ئې د اکبر برخلاف باغیانه خیالات پاللی وو. دغه وجه وه چه د سلیمان سره په دوستئ کښې د دهٔ هم فائده وه. په هرحال په دے احتیاطی تدبیرونو هغه په خپل ژوند کښې د مغلو د تصادم نه خپل سلطنت محفوظ اوساتلو. او دغه شان ئې ورله ډیر استحکام اوبخښلو.

په ۱۵۶۷ع کښې مغل وائسرائے خان زمان اووژلے شو۔ په مغل حکومت کښې خان زمان د سليمان پوخ دوست وو۔ د دا سے مخلص او پوخ ملګرى په مرګ سليمان ته لويه صدمه اورسيدله۔ ولے بيا هم هغهٔ دخپل لائق وزير لودى په مشوره خپله د احتياط نرهٔ پاليسى جارى اوساتله۔او د نوى وائسرائے منعم خان سره ئے دوستانه تعلقات قائم کړل او چه ترڅو ژوندے وو هغهٔ په خپل ذهانت، تدبر او سياسى دوراندېشۍ په مشرقى هند کښې د پښتنو د پاره يو وسيع او مضبوط سلطنت قائم اوساتلو۔ هغهٔ په يولور د مغلو جارحانه خواهشاتو ته لوئے بند يزاچولے وو۔ او په بل لور ئے خپل سرکښ او تيز دماغه پښتنو اميرانو ته واګے اچولے وے۔او هغوى ئے په مغل سلطنت کښې د جارحانه اقداماتو نه منع ساتلى وو۔ او دا يو حقيقت دے چه د هغهٔ د مرګ (۱۵۷۲ع) نه پس د پښتنو اقتدار اوسلطنت استحکام ته لويه صدمه اورسيدله۔ ولے چه د دے نه پس د سرکښه او سر تيزه پښتنو واګے د هغهٔ د ځلمو ناعاقبت انديشه ځامنو په لاس کښې راغلے۔ او هغوى د خپل پلار د عقلمندانه پاليسۍ نه په خپل ژوند کښې هم خلاف وو۔ اوکوم وخت چه ئے اختيار خپل لاس ته راغلو نو دخپلو غلطو اقداماتو په وجه ئے نصرځه تباه کړل۔

دے کښې شک نشته چه سليمان کرلانى په هندوستان کښې د پښتنو آخرى لوئے حکمران او لوئے مشر وو۔ د پښتنو د بد قسمتۍ په ورځو کښې د اکبر غوندے طاقتور بادشاه په مقابله کښې په بنګال، بهار او اړيسه غوندے اباد و، زرخيزو او وسيعو صوبو باندے مشتمل يو سلطنت تشکيل کول او هغه د اکبر د استعمار نه محفوظ ساتل د سليمان کرلانى د تدبر، قابليت او سياسى دوراندېشۍ يو شانداره کارنامه وه۔ د تار په تار او بے سروسامانه سرکښو پښتنو په يو مرکز باندے راغونډول او هغوى په ځانوکښې متحد ساتل او د خپلے محتاط پاليسۍ سره هغوى هم آهنګ کول په خپل قام باندے د هغهٔ د لوئے اثر، د هغهٔ د قائدانه صفاتو او د هغهٔ د تنظيمى قابليت يو ځرګند دليل دے او دا مبالغه نهٔ ده چه د شيرشاه نه پس په پښتنوکښې بل داسے محتاط، دوراندېش او د سياسى تيزفهمۍ خاوند څوک نهٔ وو پيدا شوے۔ سليمان يو عادل او کامران حکمران وو۔ د هغهٔ په عهد حکومت کښې په سلطنت کښې امن امان او خلق خوشحال او فارغ البال وو۔ د پښتنو دا آخرى ستر حکمران او عظيم پښتون په ۱۵۷۲ع کښې وفات شو۔

**داؤد کرلانى :-** د سليمان د وفات نه پس د هغهٔ مشر ځوئے بايزيد د پلار ځانشين شو۔ بايزيد يو ناعاقبت انديش، خود سره او د سياست نه خالى ځلے وو۔

د تخت نشینۍ سره سم هغه د خپل پلار پالیسي پرېښودله - او خطبه او سکه ئې په خپل نوم جاري کړه - ولې هغه یواځې دا حماقت او نه کړو - بلکه د پښتنو امیرانو سره هم هغه د پلار چاله پرې ښودله - او د هغوی په تباهۍ ئې ګوتې بورې کړې - د دې نتیجه دا شوه چه ټول پښتانه امیران په ځان اوویریدل - او د هغه برخلاف ئې سازشونه شروع کړل - د سازشیانو مشر قتلوخان لوهاني وو - چه د سلیمان یو جرنیل وو - د دې سازشونو په نتیجه کښې بایزید د خپل حکومت په اتلسمه ورځ اووژلې شو -

د بایزید مرګ د پښتنو ترمینځه قبائلي بغضونه او تعصبات بیا تازه کړل - او سمدستي هغه حالات پیدا شول څه رنګ چه د اسلام شاه د مرګ نه پس د عادل شاه سوري د تخت نشینۍ په نتیجه کښې پیدا شوي وو - امیران په خپل مینځ کښې ډلې ډلې شول - او د تخت د پاره درې دعویداران او دریدل - اخر د عارضي کشمکش او جنګونو نه پس د وزیر لودي په قابلیت او وفادارۍ د سلیمان دوئم ځوئې داؤد بادشاه اومنلې شو -

لودي یو ډیر قابل انسان او د پښتنو د اتحاد مقصد هغه ته د هرڅه نه زیات عزیز وو - د غه وجه وه چه هغه په خپل تدبر او قابلیت په پښتنو کښې اتحاد پیدا کړو - او داؤد ئې د مختلفو دعویدارانو او مغلو په مقابله کښې کامیاب کړو - څه لږه موده خو داؤد د خپل قابل او محسن وزیر لودي په مشورو او هدایاتو عمل کولو - ولې دا حالت ډیر زر بدل شو -

د خپلې ځوانۍ په جوش کښې داؤد هم د احتیاط او دوراندیشۍ پالیسي پرې ښودله - هغه چه خپل وسیع سلطنت ته چه په بنګال، بهار او اړیسه مشتمل وو - خپل عظیم فوځ ته او خپلو وافره خزانو ته خیال اوکړو نو هغه دا اووې چه زما سلطنت د اکبر د سلطنت نه په څه کښې کم دې - او د دومره وسیع مالدار او په فوځي لحاظ سره مضبوط سلطنت خاوند دِ خپل ځان ته ولې بادشاه او نه وائي - د غه وجه وه چه هغه هم د خپل ورور په شان خپل ځان ته د بادشاه خطاب او ټاکلو - خطبه او سکه ئې په خپل نوم جاري کړه - او د مغل حکومت په شان ئې خپلو امیرانو وزیرانو ته خطابونه ورکول شروع کړل - او خپل ځان ئې په هر لحاظ سره خود مختار او د مغلو د اقتدار نه آزاد اوګڼلو - او لکه چه وړاندې موږ ئيلي دي په دا سې کولو کښې داؤد نه څه اخلاقي ضابطه ماته کړې وه او نه قانوني - لیکن چونکه اکبر به د پښتنو په حکومت باندې د حملې د پاره ښنګې بهانې لټولې نو د داؤد دا فعل ئې د هغه سرکښي اوګڼله - او مغل وائسرائې منعم خان ته ئې په بهار باندې د حملې

هدایت اوکړو۔

لکه چه وړاندے وښلے شوی دی د بایزید په مرګ په پښتنو کښے د اتفاق لوبه ختم شوی وه۔ او په دوی کښے خود غرضئ او قبائیلی رقابتونه رالمیدلی وو۔ او اګرچه وزیر لودی په خپل قابلیت دوی بیا راغونډ کړی وو لیکن کوم اور چه لګیدلے وو هغه پوره پوره مړ شوے نۀ وو۔ د داؤد امیرانو اوس د هغۀ د وزیر لودی وجود د خپلو ناپاکه اغراضو په لار کښے لوئے بندیز اوګڼلو۔ او د دے مخلص او لوئے پښتون برخلاف په سازشونو کښے لګیا شول۔ د داؤد په زړۀ کښے ئے د هغۀ برخلاف بدګمانئ پیدا کړے۔ او دا ئے دے حد ته اورسولے چه احسان فراموش داؤد اول د لودی ځوئے یوسف خان اووژلو۔ او څه موده پس ئے په اعتبار کښے یواځے خپل محسن نه بلکه د ټولو پښتنو محسن لودی اووژلو۔ او په خپله بدبختئ ئے په خپل لاس مهر اولګولو۔ دے کښے شک نشته چه لودی په خپل قابلیت او دور اندیشئ پښتانۀ په خپل مینځ کښے په یو مقصد او مرکز راغونډ کړی وو۔ او د غه شان ئے په خپله پالیسئ د پښتنو سلطنت د مغلو د جارحانه حملو نه محفوظ ساتلے وو۔ ولے د لودی قتل د مغلو د لارے نه یو لوئے بندیز لرے کړو۔ دا یو داسے حقیقت دے چه مغل مؤرخ ابوالفضل هم د دے اعتراف کوی او داسے وائی:۔

" دا د شهنشاه (اکبر) خوش قسمتی وه چه د هغۀ دشمنانو (یعنے داؤد وغیرۀ) په خپله هغه کار (د لودی قتل) تر سره کړو کوم چه د شهنشاه نوکرانو د خپلو بهترینو کوششونو باوجود سرته نۀ شو رسولے۔ دا وینا د لودی د شخصیت د بلندئ او د هغۀ د قابلیت او سیاسی دور اندیشئ یو واضح ثبوت دے۔

د خپل قابل وزیر قتل ته داؤد د قتلو خان لوهانی، ګجر خان کرلانی، او سری هاری هندو وزیر په لسون تیار شوے وو۔ چنانچه د لودی د قتل نه پس قتلو د وزارت په عهده او تاکلے شو۔ او سری هاری ته د وکالت عهده ورکړے شوه۔ د دے دواړو امیرانو د داؤد سره یواځے دا غداری نۀ وه چه هغه ئے د خپلو اغراضو د پاره د خپل محسن لودی قتل ته اوپارولو۔ بلکه د دے نه پس هم دوی په ډیرو نازکو موقعو د خپلو مفادو د حفاظت په غرض د مغلو سره سازشونه اوکړل۔ او د داؤد بیړئ ئے غرقه کړه۔

د لودی قتل په پښتنو کښے لویه بے اتفاقی پیدا کړه۔ اکبر خو به هسے هم پښتنو ته په اوبو کښے خولے خولے کیدو۔ داسے موزونه موقع هغه کله خطا کوله۔ چنانچه د لودی د قتل نه پس ئے سمدستی خپل وائسرائے منعم خان ته په بهار باندے د حملے هدایت

اوکړو - او منعم خان د یو لوئ فوځ سره په بهار حمله اوکړه. اگر چه د داؤد سره دمغلو دمقابلې د پاره یو لوئ فوځ موجود وو - بیا هم هغه په میدان مقابله او نهٔ کړه. پټنې ته واپس شو - او په قلا کښې محصور شو. مغل فوځونو قلا محاصره کړه - ولې د مغلو محاصرې د محصورینو په همت او مدافعت کښې څه فرق نهٔ شو راوستې . آخر په ۱۵۷۴ کښې اکبر په خپله د جنګ موقع ته راغې - د پټنې محصورینو ته به خوراک او د ضرورت سامان د حاجي پور نه رارسیدو - چنانچه د اکبر په هدایت دا علاقه دیو سخت جنګ نه پس فتحه شوه. د حاجي پور سقوط د محصور پښتنو زړونه پرے ایستل - او هغوی د قلا خالی کولو فیصله اوکړه - ولې داؤد د قلا په پرے سپودلو رضا نهٔ وو - چنانچه هغه ئې په ناجبرئ کښې په شرابو نشه کړو - او شپه په شپه ئې د قلا نه بنګال ته اورسولو. د قلا د خالی کولو کار گجر خان کرلانی ته حواله شوے وو. په دے کار کښې پښتنو ته هد په صورته زیان اورسیدو. د شپې په توره تیارهٔ کښې مغلو د سیند بند مات کړے وو. او دغه شان تول سیلاب سیلاب او جبه جبه وو - په دے سیلابونو او جبو کښې بے شمیره هاتیان، اسونه او سازو سامان د پښتنو نه گیر شو - او د مغلو لاس ته راغې - ډیر پښتانهٔ په سیند کښې لاهو شول - او ډیر د مغلو په تورو مړهٔ شول - د قلا د خالی کولو نه پس مغلو په پټنه قبضه اوکړه - او د ۱۵۷۵ تر آخره پورے مغلو د پښتنو نه سراج کړه، مونګیر، بهاګلپور او کول گنګ او نورے ډیرے علاقے لاندے کړے.

د شکست نه پس داؤد بنګال ته لاړ - او د بنګال د حفاظت په غرض ئې د تیلوګړهئ دره محفوظه کړه - دا دره د ډیرے څوانئ زمانے نه د شمالی هند دلوری نه په بنګال کښې د داخلیدو دروازه گڼلے شي - د دے د حفاظت په غرض شیرشاه په خپل وخت کښې یو قلا هم جوړه کړی وه- داؤد دلے څه فوځ پرے سپود - ولې دا ناکافی وو-

مغل سپه سالار منعم خان هم د داود په تعاقب کښې د تیلوګړهئ درے ته راوا رسید - ولې د هغهٔ د پاره په دے دره تیریدل گران وو- ولې د هغهٔ دا مشکل څنې زمیندارو آسان کړو- او هغه ته ئې د بنګال د داخلې د پاره یو پټه لاره او ښودله- منعم خان څنې فوځي دستے په دے لاره اولیږلے - د داؤد د تیلوګړهئ حفاظتي فوځ چه د مغلو دا فوځ اولیدو نو په وارخطایئ کښې ترینه بند پیوند خطا شو- او دجنګ نه بغیر او تښتیدهٔ - په دے ډول د تیلوګړهئ اهمه دره د جنګ نه بغیر د مغلو په قبضه کښې راغله -

د تیلوګړهۍ قبضې تول بنګال د مغلو په تلی کښې کیښود. داؤد چه د دې حالاتو نه خبر شو نو ډېر پریشانه شو په حالت کښې ئې حمله دارالخلافه د ټانډې نه ستګاؤں ته بدله کړه. په ستمبر ۱۵۷۴ء کښې منعم خان په ټانډه قبضه اوکړه. او ځینې فوځ دستے ئې په پښتنو فوځونو پسې د بنګال په مختلفو علاقو کښې خورې کړې.

په ۱۵۷۵ء کښې د توکاری په مقام د مغلو او پښتنو ترمینځه بیا یو خونړے جنګ اوشو. دا ځل میدان پښتنو اوګټلو. ولې د مکملې فتح حاصلولو نه اول د جنګ په میدان کښې په لوټ اخته کیدل د پښتنو فوځیانو یو داسې بد عادت وو چه په دې بد عادت دوی ډېر ځله خپله فتحه په باټیلات بدله کړې ده. دا ځل هم دوی په لوټ اخته شول. مغلو چه دوی په لوټ مشغول اولیدل نو بیائې پرې حمله اوکړه. او دوی ئې په تیښته مجبور کړل. دا ځل هم د پښتنو ډېر غلي په جنګ کښې مړه شول. او بے حسابه د مغلو په لاس کښې بندیوان شول. بله ورځ دا جنګی قیدیان د منعم خان په حکم اووژلے شول. او د هغوی د سرونو نه اتیا لوړے مونارے سازے کړے شوے.

دے شکست د داود فوځی طاقت په لویه صدمه اورسوله. ولے مغل هم د دے وضعیت نه خبر وو. او داؤد ئے ساه اخستلو ته نهٔ پرے ښودلو. د شکست نه پس داؤد د کټک په قلا کښې محصور شو. او د مغلو سره ئے د صلې خبرے اترے شروع کړے. مغل اګر چه ګټندویه وو. ولے په یو څه جنګونو دوی هم زپلی وو. نو داؤد د سره ئے صلح ته غاړه کیښوده. د دوی په مینځ کښې معاهده اوشوه. چه د هغ له مخه داړیسه صوبه د داؤد سره پاتے شوه. داؤد د اکبر بالادستی اومنله. او د هغهٔ په نوم ئے د خطبے او سکے جاری کولو وعده اوکړه. د دے معاهدے له مخه په بنګال او بهار باندے د مغلو قبضه تسلیم شوه. اګرچه عملاً پښتنو امیرانو په بنګال او بهار باندے د مغلو اقتدار تسلیم نهٔ کړو. او دوی د مغلو سره په دے علاقه کښې جنګونه کول. خصوصاً د بنګال شمالی علاقے او د بهار جنوبی علاقے د پښتنو په قبضه کښې وے. په ۲۳ اکتوبر ۱۵۷۵ء منعم خان وفات شو.

د منعم خان وفات د داؤد زړهٔ بیا د بنګال او بهار تسخیر ته لیواله کړو. چنانچه هغهٔ په خاموشئ کښې په بنګال حمله اوکړه. او سمدستی ئے په خپله زړه دارالخلافه ټانډه قبضه اوکړه. او د تیلوګړهۍ دره ئے هم ښه مضبوطه کړه. د داؤد دے ناڅاپی حملے په بنګال کښې په هر ځائے کښې مغل فوځونه وار خطا کړل. او هغوی د جنګ نه بغیر بنګال پرے ښود اکبر چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغهٔ د خان جهان او تودړمل په ماتحتئ

کښې یو لوئے فوځ د بنګال په دوباره تسخیر مقرر کړو - دا فوځ په نومبر ۱۵۷۵ء کښې د ګړهې نه روان شو - د بهاګلپور سره نزدے د بنګال نه تښتیدلے فوځ هم د دوی سره یو ځائے شو - ولے دا فوځ دومره ویرے اخستے وو چه په ډیره مشکله د نوی فوځ سره دوباره بنګال ته په تلو اماده شو -

دا ځل داؤد د تیلوګړهئ د حفاظت د پاره درے زره پښتانه فوځیان پرے ښودلی وو د یو خونړی جنګ نه پس مغل فوځونه د تیلوګړهئ په تسخیر کښې کامیاب شول - او د بنګال د حفاظت دا اهمه دروازه یو ځل بیا د مغلو لاس ته راغله - او خان جهان د ټانډے لاره اونیوله - داؤد د ده مقابلے ته د راج محل دره نیولی وه - او دلته داؤد خپل طاقت دومره مضبوط کړے وو چه مغل فوځونه ځے اووه میاشتے ایسار کړل - د دے توقف ، د خوراک کمی او د بارا نونو شکیل کیدلو د مغل فوځونو زړونه او غورزول -

د دے نه علاوه مغل فوځونه اکثر په سنی مذهب وو - د شیعه جرنیل خان جهان په ماتحتئ کښې په جنګ کولو هم ناراضه وو - دا داسے حالات وو چه د داود په حق کښے موافق وو - او د هغهٔ د کامیابئ امکانات روښ وو -

خان جهان چه د خپل فوځ په حالت پوه شو نو هغهٔ سمدستی د اکبر نه د خوراک او فوځی کُمک خواست اوکړو - او اکبر سمدستی هغهٔ ته د خوراک ډیر سامان او نوے فوځ اولیږلو - په بل لور هغهٔ د داؤد په امیرا نو کښې هم ځان له ډله پیدا کړه - او د داؤد دوه اعتبادی امیران سری هادی (هندو) او قتلو خان لوهانے په خپله پره راواړول - دا دواړه هغه سړی دی چه د دوی په لسون داؤد خپل محسن وزیر لودی قتل کړے وو - په دے نازکه موقع کښے چه د داؤد او ټولو پښتنو ژوند او عزت او ناموس په خطره کښے وو - د دے امیرانو غداری یو داسے نا قابل معافی جرم دے چه د هغې مثال موندل په ګران وی -

په دے موقع د داؤد هندو وزیر مغل جرنیل ته د داؤد د سلطنت اهم کاغذات او فوځی رازونه څرګند کړل - او د دے په بدل کښے ځے د مغلو نه د خپل جاګیر جیسورد حفاظت وعده واخسته - د سری هاری یوائے دا غداری نهٔ وه - بلکه هغهٔ د خپل محسن بادشاه په داسے نازک وخت کښے چه هغه د مرګ و ژوند په جګړه کښے لګیا وو ټوله خزانه په کشتئ کښے بار کړه او په چپه خُله ځے خپل جاګیر (جیسور) ته اورسوله - او په خپله د خپل ورور سره اوتښتیدهٔ - په دے دستور قتلو خان لوهانی هم د مغلو نه په اړیسه کښے د خپل جاګیر او حکومت وعده واخسته - او د دے په بدل کښے دا وعده ځے اوکړه

چه په جنګ کښې به ههغه (قتلو) داسې پوزیشن اختیاروي چه د هغې په وجه د داؤد شکست یقیني کړي -

د مغلو سره د جنګ نه اول داؤد ته د خپل اعتباري وزیر سري هاري د غدارۍ حال معلوم شو. او ههغه په دې واقع دومره نا امید شو چه ههغهٔ د راج محل د درې محفوظ پوزیشن چه حلته ههغهٔ اووهٔ میاشتې مغل فوځونه تم کړي وو پرې ښودلو او د یو آخري قسمت ازمایئ په غرض د راج محل په میدان کښې د مغلو سره جنګ ته اماده شو - دا مشهور او فیصله کن جنګ په ۱۲ رجولائی ۱۵۷۶ء کښې د راج محل په میدان کښې اوشو. او مغل په کښې کامیاب شول -

د راج محل جنګ د پښتنو او مغلو ترمینځه اخري فیصله کن جنګ وو - د بد قسمتۍ نه د داؤد د فوځ یو ډیر توریالے افسر جنید خان چه د داود تربور وو د جنګ په ابتدا کښې ډیر بد بد ژوبل شو - د دې باوجود هم ههغه په ډیرې بهادرۍ اوجنګیدلو - په اوله حمله کښې پښتنو مغل فوځونه او پچقول - لیکن د مغل فوځ په ګوله بارۍ د داؤد د فوځ یو بل نومیالے افسر کالا پهار سخت ژوبل شو - او ههغه د میدان نه اووتلو - دغه شان جنید خان هم د جنګ په میدان کښې اووژلے شو - د دې افسرانو په مرګ د پښتنو فوځیانو پښې سستې شوې - او تیښته ئې اوکړه - داؤد هم د جنګ د میدان نه اوتښتیدهٔ ولے اس ئې په یو جبه کښې ګیر شو - او دغه شان د مغلو په لاس کښې بند یوان شو - او وروستو د مغل جرنیل خان جهان په حکم اووژلے شو - او د ههغهٔ سر د اکبر په خدمت کښې اولیږلے شو -

د راج محل د دې جنګ په مشرقي هند کښې د پښتنو د سلطنت اخري باب ختم کړو -

د نعمت الله مطابق د راج محل په میدان کښې د پښتنو د شکست باعث د قتلو لوهاني غداري وه - چه ذکر ئې پورته شوې دې - د قتلو خان دا غداري څکه ربښتیا معلومیږي چه د بنګال و بهار په علاقو باندې د قبضې نه پس د اړیسه علاقه د قتلو په قبضه کښې وه - او دا علاقه د ۱۵۸۳ء پورې د ههغهٔ په قبضه کښې پاتې وه - دغه وخت چه د بنګال او بهار مغل امیرانو د اکبر خلاف بغاوت اوکړو - نو قتلو خان هم د ههغوي ملګرتیا اوکړه - او د دې په نتیجه کښې دا علاقه د ههغهٔ د لاس نه اووتله - په دې ډول چه د سري هاري سره کومه غداري منسوب به ده - ههغه هم درسته معلومیږي څکه چه هرکله د داؤد د شکست نه پس مغلو په بنګال قبضه اوکړه - نو د جیسور علاقه د سري هاري په قبضه کښې پاتې شوه - دا د دې خبرې

واضح ثبوت دے چه د داوُد دے دواړو امیرانو دخپل مفادو دپاره دمغلو سره سازش کړے وو. او داد هغ غداریٔ انعام وو.

که چرے موږ د پښتنو ددے سلطنت دزوال اسباب اولټوو نو هغه به په لنډو الفاظوکښےداسے بیان کړو چه ددے سلطنت د زوال بنیادی سبب د داوُد غلطه او د ناعاقبت اندیشۍ پالیسی وه.

د داوُد د ټولو کارونو نه ناوړے کار داوو چه هغه دخود غرضه او سازشی امیرانو په لسون خپل هغه لائق وزیر قتل کړو کوم چه د دوی دخاندان جانثاراو په خپله د داوُد لوئ محسن وو. داهغه داوُد ته هم ددے وزیر په قابلیت رسیدلے وو. ددے نه علاوه لودی په خپل قابلیت په یو لوړ په پښتنو امیرانو کښے پرے اچولے وو. او په بل لوریٔ دمغلو دجارحانه اقداماتو په لارکښے دهم لوئ بندیز پیدا کړے وو.

د داوُد دویم ناوړه کار داوو چه خپل غیر مسلم وزیر سری هاری ته ئے ډیرے پرانستے واکے ورکړے وے. او هغه ئے دخپلو مالیاتو مکمل اختیار من کړے وو. دغه وجه وه چه دے غدار هندو په ډیر نازک وخت کښے د داوُد ټوله خزانه جارو کړه. او هغه ئے خپل کور ته اورسوله. او داوُد پرے هله خبر شو چه اوبۀ بیا د ورځه اوړیدلے وے. دے احسان فراموشه هندو یوائے دا نه چه داوُد ئے په ډیر نازک وخت کښے د پولیٔ پرق ته کښینولو. بلکه د هغهٔ په سرئے هم صرفه اونۀ کړه. او د هغهٔ ټول فوځی رازونه ئے مغلو ته څرګند کړل. او په دے دولئے د هغهٔ شکست یقینی کړو. دهم په دے دول قتلولوهانیٔ چه دخپلو عارضی مفادو په خاطر د داوُد او ټولو پښتنو د مفادو سره کومه غداری کړی ده هغه هم په خپل نوعیت کښے د سری هاری د غداریٔ نه کمه نۀ ده. بلکه د پښتنو دمفادو په نقطه نګاه د قتلو غداری ډیره سنګینه ده. سری هاری خو بیا هم یو زرپرست هندووو. هغهٔ چه څه کړی دی دخپل فطرت مطابق ئے کړی دی. د داوُد فرض ووچه ددے هندو دفطرت مطالعه ئے په ژور نظر کړے وے. او خپل ځان ئے ویښ ساتلے وے. ولے قتلو خان خو پښتون وو. هغهٔ ته داخیال پکار ووچه د اکبر په مقابله کښے چه هغه د نام پښتون د اقتدار مخالف وو. دخپل قام او دخپل سلطنت دوسیعو مفادو په خاطر په عارضی فائده نۀ وے غولیدلے. او دے غداریٔ ته نۀ وے اماده شوے.

د پښتنو ددے سلطنت د زوال بل باعث د اکبر هغه عزم وو چه هغهٔ ددے سلطنت په باب کښے کړے وو. اکبر په هر قیمت په هند کښے د پښتنو د اقتدار د ختمولو اراده کړی وه. او د هغهٔ دا اراده د داوُد د غلطو اقدامونو په نتیجه کښے کامیابه شوه. او دغه شان پښتنو په بنګال او بهار کښے خپل هغه کور او سلطنت بیا لود چه هغه د شیرشاه په دانایۍ او قابلیت قائم شوے او د سلیمان کرلانی په سیاسی تدبر محفوظ ساتلے شوے وو.

# په بنګال او بهار کښې د پښتو په دور کښې انتظامي کيفيت

د بنګال علاقه د شيرشاه د عروج د وخت نه د پښتنو د مرکزي سلطنت يو حصه وه. ولې هرکله چه د عادل شاه په وخت کښې طوائف الملوکي شروع شوه نو په دې صوبه کښې محمد خان سور د خپلې خود مختارۍ اعلان اوکړو - او دا صوبه د هند د مرکزي حکومت نه بيله شوه - او د داؤد کرلاني د مرګ ترينه (۱۵۷۶ء) پورې په دې خطه کښې خود مختار حکومت قائم وو.

د سوري حکومت په زمانه کښې د بنګال په خطه کښې سوري او کرلاني پښتانه داهيت خاوندان وو. بيا په کرلاني دور کښې کرلاني او لوهاني پښتنو تفوق حاصل کړو. په دې خطه کښې هم د پښتنو سلطنت د قبائيلي مشرۍ په خصوصياتو او روايا تو قائم وو. د شيرشاه په عهد کښې بنګال په يوڅو حصو کښې تقسيم وو - او دا ټوله علاقه قبائيلي سردارانو ته په جاګير کښې ورکړې شوې وه - سوري او کرلاني بادشاهانو هم دغه علاقې خپلو خپلوانو او اميرانو ته په جاګير کښې ورکړې وې - دا قبائيلي سرداران به په خپلو خپلو جاګيرونو کښې عملاً خود مختار وو. ولې د بادشاه به وفادار وو - او د جنګ په وخت کښې به ئې د خپلې خپلې قبيلې د فوځ سره د بادشاه مدد کولو - او مقرر خراج به ئې هم ورکولو.

په دې خطه کښې هم د پښتنو مرکزي حکومت په هغه اصولو او روايا تو قائم وو څه رنګ چه د دوئ سلطنت په شمالي هند کښې وو - په دې انتظام کښې به بادشاه د يو انتظامي سربراه او د پښتون اولس د يو مشر حيثيت لرلو. اګر چه بادشاهي به موروثي وه. ولې د جانشين په انتخاب کښې به قبائيلي سردارانو خپل انتهائي اثر ورسوخ استعمالولو. ترکومه چه د بادشاه او د دې قبائيلي سردارانو تعلق وو هغه به تر ډيره حده د بادشاه په خپل شخصيت، قابليت او سياسي شعور مبني وو - د سليمان کرلاني په شان يو مدبر او قابل بادشاه

په د ټولو سردارانو وفاداري او اعتماد حاصلولے شو۔ او د داؤد په شان یو کمزورے حکمران به د دے سردارانو په لاس کښے لوبیدلو۔ په دے صورت کښے مقتدر رو سردارانو خپله پالیسي او مشوره په بادشاه ورتپله۔

په بادشاه پسے د اختیاراتو په لحاظ دوئم سړے وکیل وو۔ دے به لوئے مشر او انتظامي افسر اعلیٰ وو۔ وکیل به د بادشاه د لوری نه د انتظامي معاملاتو نگراني کوله۔ او د ضرورت او په هنګامي حالاتو کښے به ئے په خپله فیصلے هم کولے۔ او هغه به ئے په عمل کښے را وستلے۔ د لودی د قتل نه پس دا عهده داؤد قتلوخان لوهاني ته ورکړے وه۔

په وکیل پسے دا قتدار په لحاظ بله عهده د وزیر وه۔ وزیر به عموماً د محکمه مال افسر اعلیٰ وو۔ او په مالي معاملاتو به ئے مکمل اختیار لرلو۔ داؤد په خپل وخت کښے په دے عهده د خپلے هلکوالئ د زمانے دوست او ملګرے یو بنګالے هندو سری هاري مقرر کړے وو۔ او د بکرماجیت خطاب ئے ورکړے وو۔ دے هندو د داؤد د دوستئ نه دا ناجائزه فائدا خستے وه چه د مال په محکمه کښے ئے خپل ټول ورونه او عزیزان نوکران کړي وو۔ او په دے وجه ئے په مکمل طور مالي معاملات په قبضه کښے وو۔ د داؤد د دے دواړو اهمو عهدے دارانو ذکر وړاندے شوے دے۔

د وزارت نه علاوه دا قتدار په لحاظ بله عهده د دیوان عرض وه۔ د دے محکمے په ذمه به د فوځي معاملاتو انتظامات وو۔ دے محکمے ته محکمه دفاع ویلے شو۔ داؤد په خپل وخت کښے دا محکمه ګجر خان کرلاني ته حواله کړي وه۔ او هغه ګویا د داؤد وزیر جنګ وو۔ دا درے واړه عهدے دار به عموماً د بادشاه مشیران وو۔ او په اهمو معاملاتو کښے به د دوی په مشوره کارکیدلو۔ د دے نه علاوه په دوی پسے د اقتدار په لحاظ سپه لار عهده وه۔ داؤد د سپه سالارئ په عهده خپل یو امیر اسماعیل خان سلاح دار ټاکلے وو۔ او هغه ته ئے د خان خانان خطاب ورکړے وو۔

د بنګال پښتنو بادشاهانو به یو مضبوط او لوئے فوځ ساتلو۔ د سلیمان کرلاني فوځ په ۳۰۰۰ هاتیانو، څلویښت زره سورو او څوارلس زره پیاده سپاهیانو مشتمل وو۔ د دهٔ سره شل زره توپے هم وے۔ او د دے نه علاوه څو سوه جنګي کشتئ ئے هم لرلے۔

د بنګال پښتانهٔ حکمرانان د شمالي هند د پښتنو حکمرانانو په شان بے تعصبه وو۔ او د خپل غیر مسلم رعیت په باب کښے به د رواداري په پالیسي چلیدل۔ او د دوی

د مفادو نه به ئې هېڅکله بې پروائي نۀ کوله. دوی به د هندوانو د قابلو افرادو ډېر قدر کولو. او د ذمه وارۍ عهدې به ئې ورکولې. د سلیمان کرلاني په بیان کښې د ټولو هندو عهدې دارانو ذکر شوے دے. د داؤد په وخت کښې هم د هغۀ دوزیر سری هاری د اقتدار په وجه د مالیاتو په محکمه د هندوانو قبضه وه.

دا بادشاهان د ټول غیر مسلم رعیت د مفادو نه هېڅکله هم بې پرواه نۀ وو. او په مختلفو طریقو به ئې د هغوی مدد کولو. دوی به بنګالۍ ژبې ته هم په درنه سترګه کتل. دغه وجه ده چه بنګالي ادب په دے دور کښې نمایان ترقي کړې وه. په دے دور کښې ځنې مسلم شاعرانو هم بنګالي ادب ته ډېرے بخښنې کړې دی. په دے شاعرانو کښې فیض الله، دولت وزیر بهرام او دوتا غازي د خپلو ادبي کارنامو په وجه د ستائینې ور دی.

# د پښتنو په باب کښې د اکبر پالیسي

د سیاسي اقتدار د حصول کوم جنګ چه د پاني پت په میدان کښې شروع شوے وو. هغه په قطعي او موثر شکل کښې د راج محل په میدان کښې د داوُد کرلاڼي په مرګ په ۱۵۷۶ء کښې ختم شو. او د دے نه پس پښتانهٔ په هند کښې بے کوره بے اوره شول. اګرچه د دے نه پس هم د اکبر په ټول عهد حکومت کښې ځنے پښتانهٔ امیران او قسمت ازما پښتانهٔ ځوانان کله په انفرادي شکل کښې کله د وفاق په شکل کښې او کله د اکبر د مخالفینو په ملګرتیا کښې جنګیدل ولے د دوی دا جنګونه بے نتیجې او محض د انتقامي جذبے زیر اثر وو. او پښتانهٔ په دے کښې کرم هم نهٔ وو. د پښتنو په باب کښې د اکبر پالیسي په نفرت مبني وه. د اکبر دا اراده وه چه پښتانهٔ نهٔ صرف د سیاسي اقتدار نه محرومه کړي. بلکه په اقتصادي لحاظ ئے دومره اوغورزوي چه دوي د سر اوچتولو قابل نهٔ شي پاتے. د دغه وجه وه چه که یو طرف ته به هغهٔ د پښتنو برخلاف فوځي مهمات لیږل. نو په بل لورے ئے د خپل حکومت په اغاز کښې په خپل سلطنت کښې د پښتنو جاګیرونه ضبط کړل. او خپل شیخ الاسلام شیخ عبد النبي ته ئے دا هدایت اوکړو چه د ټولو خانانو د مدد معاش زمکے ضبط کړي. شیر شاه او اسلام شاه په خپل عهد حکومت کښې د پښتنو ډیرو درنو کورنیو، سیدانو، ستانه دارو او نورو مستحقینو ته د ګذارے جوګه زمکے ورکړے وے. او د دے زمکو په آمدن به د دغوی ګذاره روانه وه. دا زمکے اکبر ضبط کړے. ولے دا افسوس خبره دا ده چه هم په دغه حکم کښې د غیر پښتنو په حق کښې شیخ الاسلام ته د تحقیقات او د مستحقینو د سفارش هدایت شوے وو. او پښتانهٔ د دے حق نه محروم ساتلے شوي وو. که چرے دا قدم د سلطنت د اقتصادي مفادو په لړ کښې اوچت شوے وے. نو بکار ده چه دا عام وے. او د پښتون او غیر پښتون تمیز په کښې نهٔ وے. او د پښتنو معامله هم د تحقیق نه مستثنٰی شوے نهٔ وے. ولے په یو حکم کښې د پښتنو سره امتیازي سلوک کول د دے خبرے غمازي کوي چه اکبر د پښتنو

په اقتصادي لحاظ سره د تباه کولو اراده لرله.

د پښتنو سره چه د اکبر کوم بغض او نفرت وو هغه د مغل مؤرخينو بالخصوص د ابوالفضل په ليکنو کښې ډير څرګند دے. دا ظاهره ده چه الفاظ د مصنف د خيالاتو او جذباتو اظهار کوي. او ابوالفضل چه د پښتنو په باب کښې کوم خيالات ظاهر کړي دي هغه په حقيقت کښې د اکبر خيالات دي. د دے مبالغې ليکوال چه چرته د پښتنو ذکر کړے دے. نو دوي ئے د بدبخته، خردماغه، بے مغزه، فساديانو، بدمعاشانو په الفاظو ياد کړي دي. عام پښتانهٔ خوشحال چه چرته د شير شاه ذکر راغلے دے نو هغه ئے هم د غاصب، مکار او دوکه باز په خطابونو ياد کړے دے. شير شاه يواځې دا نه چه د پښتنو يو محبوب بادشاه وو. بلکه د ټولو باضميره مؤرخينو په نظر کښې هغه د هندوستان يو داسے بادشاه وو چه د هغهٔ مثال د هندوستان تاريخ لا نهٔ دے پيش کړے. د شير شاه جرم محض دا وو چه هغهٔ د همايون نه د هندوستان هغه سلطنت بيا راستون کړے وو چه د هغې اغاز هم پښتنو کړے وو. او بابر هم د پښتنو نه اخستے وو. نو که شير شاه غاصب وو. نو بابر ته څه وئيل پکار دي؟ او په دے دول چه هرکله په ۱۵۵۵ کښې همايون د شير شاه د نالائقه اولادنو نه د هند سلطنت بيا ستون کړو. نو د غه وخت همايون ته ولے غاصب نهٔ دی وئيل پکار. او هرکله چه په هر دور کښې او هره زمانه کښې ميينه د کونتې د خاوندوي نو بيا څو هډو چا ته غاصب وئيل مناسب نهٔ دی. دا حقيقت چه د پښتنو په باب کښې د اکبر دلي جذبات په نفرت مبنې وو. د دے واقع نه معلوميږي چه دا احمد نګر په سلطنت کښې دولت خان لودي د معمولي درجے يو امير د دے سلطنت وفادار ملازم وو. په ۱۶۰۱ کښې دا امير مړ شو. د دهٔ د مرګ نه چه اکبر خبر شو نو سمدستي ئے دا او وئيل:-

«امروز از جهان شير خان افغان رفت».

د پاني پت د جنګ نه پس عموماً او د راج محل د جنګ نه پس خصوصاً ډير پښتانهٔ اميران د اکبر په ملازمت کښې شامل شوي وو. په دے اميرانو کښې د څينو نومونه دا دي:- ملک مصطفىٰ خان چه د باز بهادر ورور وو. فتح خان مسند عالي چه د چنار قلا ئے بغير د جنګ نه اکبر ته سپارلې وه. او د اکبر ملازمت ئے په ډير اخلاص اختيار کړے وو. او د اکبر د پاره ئے ډيرمهمات سرکړي وو. حسن خان بټني چه د سليمان کرلاني يو امير وو. د بټني د سقوط نه ئے اول د داؤد ملازمت پرے ښودلے او د اکبر په ملازمت کښې شامل شوے وو. او د بټني د قلا فتحه هم د دے حسن خان د تدبيرونو په نتيجه کښې حاصله شوي وه. حاجي خان ر د خواص خان

ورور)- سید خان کرلانی ، شهباز خان نیازی ، ابراهیم خان کاکړ ، ابراهیم خان میانه ، محمود خان نیازی ، حبیب الله او فتح خان سوری ، دولت خان لودی (د داد هغه دولت خان کړوسے دے چه بابر ته ئے په هند باندے د حملے دعوت ورکړے وو - دده نیکهٔ دلاور خان دهمایوں یو جانثار امیر وو - او د خان خانان خطاب ئے لرلو - او د همایون په وخت کښے د وزارت درجے ته رسیدلے وو -) عیسیٰ خان مشوانی ، متوخان لوهانی ، تاج خان لوهانی ، او داسے نور ډیر - دے ټولو امیرانو په ډیر اخلاص د اکبر خدمت کولو - او په مشکلو مهماتو کښے ئے کامیابي حاصله کړی وه - ولے د دے مخلصانه خدماتو باوجود په دوی کښے یو امیر هم باوقاره حیثیت نهٔ وو موندلے -

داحقیقت چه اکبر د پښتنو امیرانو په وفادارئ اعتماد نهٔ لرلو - د دے نه څرګند دے چه اکبر په (۱۲/۲) فوځئ منصب دارانو کښے ایله نهه کسان منصب داران پښتانهٔ وو - او په دے نهو کسانو کښے صرف دوه کسه د دوهزاری منصب خاوندان وو - څلورکسه د هزاری منصب او باقی درے کسانو د پنځو سوو منصب هم نهٔ لرلو -

داخبره د فکرور ده چه اکبر به انتظامی عهدے خپلو امیرانو ته په ډیرے فیاضئ ورکولے - ولے دا به ئے مغلو ، ترکو ، ایرانیانو ته ورکوّلے او ان چه هندوانو ته به ئے هم - ولے د پښتنو په باب کښے د هغهٔ رویه په تعصب مبنی وه - د اکبر په وزیرانو او انتظامی افسرانو کښے یو پښتون هم نهٔ وو - دا حال یوائځے په مرکزی حکومت کښے نهٔ وو - بلکه په صوبو کښے هم دا حال وو - باوجود د دے چه ډیر پښتانهٔ امیران د خپلو شاندارو خدماتو په وجه د بهتر سلوک مستحق وو - ولے هغوی به د خپل اصلی حق نه محرومه ساتلے شول -

دا خو د تصویر یو اړخ وو - اوس به د تصویر بل اړخ هم اولټوو - د مغلو او پښتنو ترمینځه د اعتماد فضا پیدا کیدل ګران وو - د دے دواړو قامونو په جذباتو خیالاتو ژوند ژواک او نظام حیات کښے بنیادی فرق وو - پښتانهٔ خو د خپل قبیلوی خصوصیاتو په بنا اوځه په خپل سلطنت کښے د خپل اقتدار عادی شوی وو - هغوی د مغلو ملازمت او د ملازمت په وجه د مغلو بالادستی په هیڅ شکل کښے نهٔ شوه برداشت کولے - دغه وجه وه که ډیر پښتانهٔ رضا به قضا د مغلو ملازمت ته اماده شوی وو - نو ډیر داسے هم وو چه د دے ملازمت د پابندیو نه تنګ شوی او د فوځ نه تښتیدلی وو - او د باهمی بے اعتمادئ غټه وجه هم دغه وه -

موږ مخکښې د پښتنو په باب کښې د اکبر د دلې جذباتو په مقابله د دولت خان لودي د مرګ واقعه ذکر کړې ده - اوس به د مغلو په باب کښې چه د پښتنو کوم جذبات وو د هغې د وضاحت په لړ کښې به هم يو واقعه بيان کړو :-

د قنوج په جنګ کښې چه همايون او تښتيده - او د هغه ټول لښکر تار په تار شو نو په دې اړي ګړي کښې بيرام خان (چه څه موده پس د اکبر د سرپرست په حيثيت څو کاله د هندوستان مختار کل وو -) د شيرشاه د سپاهيانو په لاس ګير او د هغه په خدمت کښې پيش کړے شو - شير شاه د هغه د مرګ حکم اوکړو - ولې د شيرشاه د يو مقتدر امير عيسىٰ خان (چه د مسند عالي عمر خان ځوئے وو) په سفارش شيرشاه هغه معاف کړو - او هم د دې عيسىٰ خان په کومک بيرام خان د همايون سره يو ځائے شو - او د هندنه لاړ -

د پاني پت د جنګ (۱۵۵۶ء) په نتيجه کښې چه د پښتنو سلطنت بے وارثه شو نو په دے اړي ګړي کښې اکثر درانه او معزز پښتانه اميران ډير تنګدسته او په مالي پريشانئو کښې ګرفتار شول - چنانچه دغه عيسىٰ خان هم په دے ورځو کښې په مالي پريشانئو کښې ګرفتار وو -

هرکله چه بيرام خان د دهلي او آګرے مالک شو - نو هغه ته د عيسىٰ خان هغه نيکي ياده وه نو هغه په يو مجلس کښې دا اووئيل چه " عيسىٰ خان زما سربچ کړے دے - او زه د هغه ډير ممنون يم - که چرے هغه ما ته راشي نو زه به د ا خپله عزت افزائي اوګنم او که زه د هغه سره د شيرشاه په نسبت زيات مهرباني او نه کړے شم نو کم ازکم د هغه خپل جاګير " سُنبل " خو به ضرور هغه ته ورکړم -"

دا خبره عيسىٰ خان ته هم اورسيدله - او هغه ته خپلو دوستانو بيرام خان سره د تلو مشوره ورکړه - دغه وخت د عيسىٰ خان عمر نوے کاله وو -

عيسىٰ خان خپلو دوستانو ته دا اووے " زه هرګز په دے عمر کښې د دنياوي فائدے په غرض د مغل دروازے ته تلو ته تيار نه يم - او نه د مسند عالي عمر خان د اولاد دا اصول دي - چه هغوي چه چا سره يو ځل څه احسان کړے وي - هغه ورنه بيا اوغواړي -

د مغلو په لور د پښتنو رويه د عيسىٰ خان د دے جواب نه واضحه ده - او دا ورنه معلوميږي چه دوي خپل سکرک قبول کړے وو - ولې د خپل وقار او عزت نفس د مجروح کولو په قيمت ئے د مغلو د حلوا تال نه قبلوو - او دا ظاهره ده چه په دے صورت کښې د دا سے متضاد و خيالاتو لرونکو ترمينځه د باهمي اعتماد او اخلاص فضا تر هغه وخته نه شوه

پیدا کیدے۔ ترڅو چه طرفینو په خپلو خپلو نظریاتو کښے تبدیلی نهٔ وے پیدا کړے۔

د مغلو او پښتنو ترمینځه د بغض و نفرت کومه فضا چه د پانی پت د دویم جنګ نه پس د اکبر د عهد حکومت د اغاز سره پیدا شوی وه۔ هغه د اکبر په ټول عهد حکومت کښے موجوده وه۔ او د اکبر نه پس د هغهٔ د جانشینانو په وخت کښے ان د اورنګ زیب د وفات پورے قائمه وه۔ اګر چه د حالاتو د تقاضو او د سیاسی ضروریاتو په وجه به کله کله په دے کښے تبدیلی هم راتله۔

# روښنائي تحريک

د بابر د وفات نه پس (سنه ۱۵۳۰) او د همايون په لاس د هند د دوباره فتح کيدو (سنه ۱۵۵۵) ترمينځه په دے شل پنځويشت کاله عرصه کښے چه په هند کښے د شير شاه ټبر حکمران وو- په افغانستان کښے د بابر کورنۍ په خپل مينځ کښے په کورنو جنګونو کښے اخته وه- دا جنګونه اول د کامران او مرزا سليمان والئ بدخشان ترمينځه وو- او بيا د کابل د تخت د حصول په غرض د همايون او کامران ترمينځه جاري وو- په دے عرصه کښے نۀ خو د اباسيند نه په قبله د پښتنو قبائيلو څه حال معلوم دے- او نۀ د افغانستان د پښتنو. البته دومره معلومه ده چه د تخت نشينئ په دے جنګونو کښے به همايون او کامران دواړو ورونو فوځونه اکثر د سرحدي قبائيلو په داؤ طلبانو مشتمل وو- بالخصوص د پيښور د خواوشا علاقو قبائيل د مرزا کامران کلک ملګري وو-

ليکن دا پښتانۀ قبائيل څه رنګ چه د بابر نه وړاندے د مغل حکومت د اقتدار نه ازاد وو- او د همايون او کامران په وخت کښے هم د دوي په حيثيت و اهميت کښے څه فرق نۀ وو راغلے- په دے پنځويشت کاله کښے د پښتنو ټوله علاقه خو اګر ميداني وه او که غرنيزه عملاً د مغلو د اقتدار نه ازاده وه- کامران اګرچه نسبے په نوم خو د اباسيند پورے د علاقے حکمران وو- ولے په پښتنو د هغۀ اقتدار قطعًا غير موثر او غير يقيني وو- او تر هغه حده محدوده وو- تر کومه چه د دے پښتنو (بالخصوص د غوريه خيلو) خپلو مفادو د دے اقتدار تقاضا کوله- کامران صرف په دے خبره هم خوشحال وو چه د تخت نشينئ په جنګونو کښے د خپل ورور په مقابله کښے د دے خلقو مرسته او تعاون حاصل کړي. د کامران نه پس همايون هم د دے پښتنو په ايل کولو کښے کامياب شوے نۀ وو- او د سنه ۱۵۵۲ پورے خو هغه د دے قابل هم نۀ وو- چه د خيبر لاره د خپل تګ راتګ د پاره ازاده اوساتي- د کرے لار هم د هغۀ د پاره غير محفوظه وه- دا حقيقت چه د همايون

په وخت کښې دا پښتانهٔ دهندهٔ د اقتدار نه بيخي آزاد وو - د دے نه څرګند دے چه په کال ۱۵۵۳ء کښې د کامران د ګرفتارولو نه پس چه دغه پېښور نه د کابل په لور روان شو نو يوسف زو د خپل مشر سردار خان ګجو په سرکردګئ کښې په پېښور حمله اوکړه - او د مغلو فوځونه ئے ډير اوزپل -

دا پښتانهٔ صرف د مغلو د اقتدار نه ازاد نهٔ وو بلکه دوی د هندی پښتنو د حکومت نه هم آزاد وو - دا درست ده چه د شيرشاه او اسلام شاه په وخت کښې د عيسیٰ خيلو دنيازی قبيلے پښتانهٔ د سوری حکومت په اقتدار کښې راغلی وو - ولے د قطب په لور د شيرشاه او اسلام شاه د سلطنت پوله د اباسيند د مشرقی غاړے پورے هم نهٔ وه رارسيدلی - د شير شاه آخری سرحدی قلا «رهتاس» د پنجاب د سرکښو عزتيزو قبائيلو د مدافعت د پاره جوړه وه - او د اباسيند نه په قبله پښتنو قبائيلو ته د هغ څه تاؤ تپ نهٔ وررسيدلو -

د پېښور، بنوں، ډيره جاتو او په نورو تهوله سرحدی علاقه کښې نهٔ څو باقاعده حکومت وو - او نهٔ د تاريخ په يو دور کښې يو حکمران دا کوشش کړے دے چه په وزيرستان، تيراه يا د پښتنو په عزتيزو علاقو خپل حکومت قائم کړی - بلکه هر حکمران خپله غټه کاميابي هم دا ګڼلی وه چه د هند په لور د خپل تګ راتګ لارے د دے پښتنو د حملو او مارو داړو نه محفوظ اوساتی - او د دے خلقو نه په رضا صلاح يا د انعام و اکرام په طمع خپل فوځونه مرتب کړی. او د حصول سلطنت په جنګونو کښې د دوی نه کار واخلی - مغل څو يو پردے قام وو - شيرشاه چه د دوی خپل هم قوم او پښتون وو - دغه هم د دے نهٔ وو قابل شوے چه د اباسيند نه په قبله اباد پښتانهٔ په خپل اقتدار کښې راولی - اګرچه دا ويل به بے ځايه نهٔ وی چه «روه» د دے پښتنو په حقله شير شاه په خپل زړهٔ کښې څه خاصے منصوبے لرلے - او که چرے مرګ دغهٔ ته موقع ورکړے وے نو شايد چه دغه خپلو ارادو ته څه عملی شکل ورکړے وے - او د غه شان د «روه» د دے پښتنو حالت بدل شوے وے - لکه چه دا قياس د شيرشاه د اخری خواهشاتو نه مرسته موی -

دا خبره هم د وئيلو ورده چه څه رنګ د غورکورنئ د دے داؤ طليه پښتنو په کومک په هند کښې ير نوے اسلامی سلطنت قائم کړو - او د هغ په نتيجه کښې د پښتنو طاقت د خپل اصلی مرکز نه هند ته منتقل شو - او د پښتنو په مزکه د مغلو اقتدار قائم شو - د غه شان چه همايون دوباره هند فتح کړو نو د مغلو مرکزی طاقت هم هند ته منتقل شو - او د زمانے په تيريدو سره پښتنو ته دا موقعه په لاس ورغله چه دوی په خپل وطن کښې د خپل سلطنت

په قاتلو لو کښې کامیاب شول.

لکه چه وړاندې ښوی دی د همایون په وفات په کال سنه ۱۵۵۶ع کښې اکبر د هند باچا شو. همایون باوجود د دې چه د خپل ورور کامران دلاسه ډېر تزنیدلے وو. او ټول عمر ئے ښپه په مېړتون وه. د خپل ځوی اکبر په باب کښې هم هغه غلطي اوکړه. کومه چه بابر د همایون په باب کښې کړی وه. د همایون د وصیت مطابق د هند تخت د اکبر حق وو. او د اباسیند نه په قبله علاقه او د کابل او قندهار صوبې د مرزا حکیم په حکومت کښې شاملې وې. مرزا حکیم د اکبر مېرنے ورور او د همایون د مرګ په وخت کښې د درې کالو ماشوم وو. د دې تقسیم نه تقریبًا هغه نتیجې برامد شوې کومې چه د همایون او کامران د تقسیم نه د دوی ترمینځه د خانه جنګۍ په شکل کښې برآمد شوې وې. او داحقیقت دے چه د مرزا حکیم په ژوند کښې اکبر د دې قابل نهٔ وو چه د کابل او قندهار صوبې په خپل هندی سلطنت کښې شاملې کړی.

د اکبر د تخت نشینۍ په ورځو کښې اګرچه په کابل کښې د مرزا حکیم حکومت وو لیکن د سرحدی پښتنو ټوله علاقه عملاً ازاده او په دې خطه کښې یو قسم باچاګردی وه. د خپلې تخت نشینۍ د اغاز سنه ۱۵۵۶ع نه د سنه ۱۵۸۰ع پورې اکبر په هند کښې د پښتنو او راجپوتو په معاملاتو کښې بوخت وو. په دې عرصه کښې په اولنی کالونو کښې د مرزا حکیم ماما فریدون د هغهٔ د سربراه په ډول او بیا وروستو مرزا حکیم په خپله حکمران وو. لیکن د پیښور په خطه کښې د دوی اقتدار همسې په نوم وو. تر دې چه د هشتنغر او پیښور د په علاقه کښې به هم د حکومت معاملات اکثر د فوځ په کومک اجرا کیدل. او د نورو علاقو خلق عملاً د میرزا حکیم د حکومت نه ازاد وو. ولې اکبر هم په دې خبره مطمئن وو. چه د هغهٔ د میرنی ورور واسطه د داسې خلقو سره ده چه هغوی د مرزا حکیم د مشیرانو اطاعت ته په هیڅ رنګ غاړه نږدی. دا حالت ترهغه وخته قائم وو چه مرزا حکیم لا بالغ نهٔ وو.

لیکن هرکله چه د حکومت واګې مرزا حکیم په خپل لاس کښې واخستې نو په حالاتو کښې ناساپي تبدیلي راغله. د دې ناساپه تبدیلۍ یو وجه خو د اکبر خپله مذهبي پالیسي وه چه د هغې په وجه راسخ الاعتقاد او سوچه عقیدې مسلمانان د اکبر نه متنفره شول. او بله وجهٔ د مرزا حکیم د ځلمی توب نوخیزه خواهشات او ارزوګانې وې چه په د غه ورځو کښې وهل. ولې په دې حالاتو کښې د دې تبدیلۍ یو مؤثر عامل بل هم وو

داعامل دده سرحدی پښتنو په مزکه دیو نوی مذهبي تحریک آغاز وو. چه بنیادئې د مرزا کامران په زمانه کښې کېښودلے شوے وو. او د مرزا حکیم په زمانه کښې ئې سراوچت کړو. دا تحریک د پښتنو په تاریخ کښې د « تحریک روښنائی » په نامه مشهور دے. د دے تحریک په نتیجه کښې په پښتنو کښې دوه لوئې مذهبي رهنمایان پیدا شول. چه یو د دے تحریک بانی بایزید انصاری او بل د دے تحریک شدید مخالف سید علی ترمزی (چه په پښتنو کښې د « پیربابا » په نامه مشهور دے) وو. د بایزید دا تحریک ډیر زر په ټولو پښتنو کښې مقبول شو. او اکثر پښتانهٔ په یو مرکز او یو مقصد راغونډ شول. او که چرے دا تحریک کامیاب شوے وے نو ګمان کیدے شو چه داکبر سلطنت به په دے علاقه نهٔ وو قائم شوے. ولے دا سے اونهٔ شوه. او ډیر زر د دے تحریک مخالفت په مذهبي رنګ کښې شروع شو. او پښتانهٔ قبائیل د دوؤ مذهبي رهنمایانو زیر اثر دوه ډلے شول. په دے مخالفت کښې وروستو مغل حکومت هم لویه حصه واخسته.

لکه چه اووئیلے شول د دے تحریک د مخالف ډلے مشر سید علی ترمذی (پیربابا) وو. د پیربابا اسلاف د ترمذ او سیدونکي وو. چه د رود آمو په غاړه یو کلے دے. ولے د دهٔ نیکهٔ په قندز کښې استوګنه اختیار کړی وه. د پیربابا د پلار نامه سید قنبر علی وه. چه د تیمور په خوریونو کښې وو. او د تیمور د کورنۍ یوه میرمن پرے وادهٔ وه. سید قنبر علی د بابر په امیرانو کښې شامل وو. او د « امیر نظر » بهادر خطاب ئې لرلو. د پیربابا نیکهٔ سید احمد نورنومیدهٔ. چه د خپلے زمانے یو نیک سړے او لوئے ولی ګنړلے شو. د پیربابا پرورش هم د دے خپل نیکهٔ کړے وو.

په کومو ورځو کښې چه بابر په اخری ځل په هند حمله کوله نو د هغهٔ په فوځونو کښې سید قنبر علی هم شامل وو. او سید علی (پیربابا) هم د پلار سره وو. چه د هندوستان سلطنت د بابر لاس ته راغے. نو د دے نه پس سید علی د خپل پلار په اجازت د روحانی فیض حاصلولو په غرض د پلار نه رخصت شو. « مانک پور » ته لاړ. او هلته کښې د « شیخ سیاونه » سره د روحانی فیض او حصول علم په غرض دیره شو. څه موده پس د دے ځائے نه اجمیر ته لاړ او د حضرت « سالار رومی » نه ئې لاس نیوه اوکړه. او هلته کښې دیره شو. په دے ورځو کښې د دوآبے (رپینور) د علاقے یو دوه ملکان ملک ګدائی او حاجي سیف الله چه د بابر په فوځ کښې هندوستان ته تلی وو. د سالار رومی نه د حصول علم په غرض په اجمیر کښې دیره وو. دغه شان دوی هم د

پیربابا دوستان او پیر بابایان شول۔

پیر بابا څه موده په اجمیر کښې تیره کړه۔ او بیا دخپل پیر په اجازت دکشمیر په لور روان شو۔ چه دګجرات (پنجاب) پنځه داؤد نوے کلی ته راورسیدهٔ نو خلق پرے رامات شول۔ او دپیریٔ عزت ئے خور شو۔ ډیر خلق ئے مریدان شول۔ پیر بابا څه موده دلته تیره کړه۔ ولے بیا دپیر د ملاقات په عرض اجمیر ته روان شو۔ په دغه ورځو کښې همایون د شیرشاه دلاسه در په دیګه شوے او دکابل په لور روان وو۔ د پیربابا پلار سید قنبرعلی هم د همایون په ملګرو کښې شامل وو۔ په لار کښې اتفاقاً د پلار او ځوی ملاقات اوشو۔ دواړه په دے اتفاقی ملاقات ډیرخوشحال شول۔ د رخصتیدو په وخت کښې پیر بابا ته خپل پلار څه رقم هم ورکړو۔ او دواړه جدا شو۔ پیر بابا د اجمیر په لورروان شو۔ او پلار ئے دهمایون سره لاړ۔ په دے ورځو کښې د شیرشاه سپاهیان دهمایون په تعاقب کښې په ټول ملک کښې خوارهٔ وو۔ او په هر فارسی خوان به ئے دمغل ګمان کولو۔ دشیرشاه یو څو سپاهیان په پیر بابا هم پیښ شول او چونکه دوی هم فارسی وئیله نو ګرفتار ئے کړل۔ ولے دهغه روپو په برکت دمرګ نه خلاص شول۔

پیربابا چه اجمیر ته اورسیدهٔ نو حضرت سالار رومیؒ وفات شوے وو۔ او دهغهٔ په ځائے دهغهٔ ځوئے جانشین وو۔ څه موده سید علی صاحب دلے تیره کړه او دخپل پیرزاده په هدایت دکوهستان داستوګنے په عرض داجمیر نه بیا راروان شو۔ او دا ځل پیښور ته راغے۔ د دوآوے دهغه ملکان حاجی سیف الله او ملک ګدایٔ چه ددهٔ سره په اجمیر کښې بلد شوی وو چه هغوی د دهٔ د راتلو نه خبر شول۔ نو پیښور ته راغلل۔ او دے ئے خپلے علاقے ته بوتلو۔ سید علی صاحب دلے یو کال تیرکړو۔ او بیا ئے وطن ته د تلو اراده اوکړه۔ ولے دخپلو ګکیانو دوستانو په خواست بیا پاتے شو۔ په دغه ورځو کښې د یوسف زو په علاقه کښې دوه پیران ډیرمشهور وو چه د یو نامه پیر طیب او په اصل کښې غلجے پښتون وو۔ د بل نامه پیرولی وه۔ او په ختهٔ "برېخ" وو۔ دے دواړو پیرانو ډیرشهرت موندلے وو۔ او په خپل تعلیم ئے ډیر خلق ګمراه کړی وو۔ د دے پیرانو سره د مناظرے په عرض سید علی صاحب د یوسف زو علاقے ته روان شو۔ د سدوم په علاقه کښې دیره شو۔ او ډیر زر ئے د دے علاقے خلق په خپل وعظ و نصیحت سیے لارے ته راواړول۔ دکومو پیرانو د مناظرے په عرض چه سید علی صاحب دے علاقے ته راغلے وو۔ هغوی د مناظرے نه پټ شول او هزارے ته اوتښتیدل۔ سید علی صاحب د یوسف

زو په علاقه کښې څه موده تېره کړه. په دغه دوران کښې ملک دولت خان ملېزي خپله خور مریم بي بي هغهٔ له په نکاح ورکړه. په دې غرض چه دے هم په دې علاقه کښې مستقل استوګن شي. چنانچه هم دغه شان اوشوه. څه موده پس سید علی صاحب د خپل مور پلار د لیدو په غرض قندز ته روان شو. او خپل عیال ئې د یوسف زو په علاقه کښې پرېښو. په قندز کښې هغهٔ ته معلومه شوه چه پلار ئې وفات او مور ئې ژوندۍ وه. مور چه د دهٔ د حالاتو نه خبر شوه نو د خپل عیال د پرورش په غرض ئې دوباره دې علاقې ته رااولیږلو. د دې نه پس سید علی صاحب په دوآوه کښې استوګنه اختیار کړه.

په دغه زمانه کښې به اکثر د هند او افغانستان تر مینځه تجارتي قافلې د دګندا او" په لاره تلې راتلې. او د شبقدر په خوا کښې به تیریدلے. د دې تګ راتګ او شور و شرپه وجه د روحانیت د یو طالب د پاره په دې ځائې کښې د سکون او اطمینان موقع ډیرے کمې پیدا کیدلے. دغه وجه وه چه د دے هماهمی او شور و شغب نه سید علی صاحب تنګ شو. او بونیر ته لاړ. او په پاچا نوے کلی کښې ئې استوګنه اختیار کړه. او هم په دغه کلی کښې په کال ۹۹۱هـ کښې وفات شو. د حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب والد سید بهادر خان چه په اولس کښې د «ابک بابا» په نامه مشهور دے. د پیر بابا هم عصر او دوست وو. او د دواړو ملاقاتونه شوی وو. سید علی صیب د بونیر د استوګنې په وجه په پښتو نخوا کښې د پیر بابا په نامه مشهور دے. او د هرے علاقې نه بے شماره خلق د روحانی فیض د حصول په غرض د دهٔ مزار ته راځي. د پیر بابا اولاد ته هم په درنه سترګه کتلے شي.

د پیر بابا په اولنو خلیفه ګانو او شاګردانو کښې یو مشهور او نومیالے شاګرد «اخون درویزه بابا» دے چه یو لوئې عالم او پرهیزګار بنیادم وو. او د پښتو ژبے په یو څو اولنو لیکوالو کښې حسابیږی. نوموړے د بایزید انصاری د تحریک شدیده ترین مخالف وو. د پلار نامه ئې ګدائې او د نیکهٔ نامه ئې سعدی وه. په اصل کښې ترک وو. د روایاتو مطابق په کومو ورځو کښې چه یوسف زی په ننګرهار کښې میشته وو. په هغه ورځو کښې د درویزه نیکهٔ سعدی هم د دوی سره تلل شو. او بیا د «شیخ ملی» په ویش کښې ورله د ملېزو سره برخه ورکړے شوه. اخون درویزه یو متشرع او راسخ العقیده مسلمان وو. او د خپل عمر اکثره حصه ئې د بایزید او د هغهٔ د خلیفه ګانو سره په بحثونو او مناظرو کښې تیره کړی ده. د دے مناظرو او د اخون درویزه د شدید مخالفت نتیجه وه چه روښانئ

تحریک ته پرے دیوسف زو په علاقه کښے لویه صدمه ورسیدله ـ او هم ددهٔ په کوششونو او تبلیغ د بایزید خاندان د یوسف زو په علاقه کښے تباه شو ـ او دمذهبي لیونتوب دجذبے زیراثر ددوی سره انسانیت سوز سلوک اوکړے شو ـ

د اوسنۍ زمانے څنې لیکوال دے عقیدے ته مائل ښکاری چه د پیربابا[رح] او اخون درویزه[رح] له خوا د بایزید د مذهبي تحریک په دا سے شدت سره مخالفت کول په سیاسی اغراضو مبنی وو ـ ددوی دا خیال دے چه چونکه پیر بابا د بابر د کورنۍ رشته دار وو ـ او هم په هغه زمانه کښے د ښپښتو علاقے ته راغلے وو ـ په کومو ورځو کښے چه همایون د شیر شاه دلاسه د هغه نه تښتیدلے وو ـ او د بایزید تحریک د مغل سلطنت د مفاد و برخلاف وو ـ نو مغل حکومت به د دے تحریک په مذهبي رنګ کښے د مخالفت په غرض درپرده پیر بابا او اخون درویزه بابا پارولی وی ـ په دے لړکښے ښاغلے الله بخش صاحب یوسفي په خپل کتاب یوسف زی افغان ص ۳۳۴ـ۳۵ کښے دا سے وائي ـ « د شیر شاه سوری د لاسه د شکست موندلو نه پس همایون د مستقبل په تابیا کښے حضرت سید علی ترمذی چه وروستو د پیر بابا په نامه مشهور شو دغه لوری ته په دے غرض رالیږلے وو چه په مذهبي رنګ کښے د بایزید د تحریک مقابله اوکړی ـ چنانچه پیر بابا د یوسف زو په علاقه کښے د میشته کیدو نه پس په داسے طاقت او سرګرمۍ د بایزید مقابلے ته ملا او تړله ـ چه هغه سره چه په دے علاقه کښے په « پیرروښان » مشهور وو ـ بیا به ورله « پیرتاریک » ویلے شول ـ او بایزید چه کوم خوب لیدلے وو ـ د هغے تعبیر حاصل نهٔ شو ـ » او مخکښے په ص ۳۳۷ کښے دا سے وائي ـ « د ګګیانو د علاقے نه د یوسف زو (بونیر) علاقے ته د پیر بابا راتلل او د بونیر په باچا کای کښے د هغهٔ استوګن کیدل دے خیال ته تقویت ورکوی چه هغه به د همایون په وینا دے کلی ته راغلے وی »

ترڅو مره چه د ښاغلی یوسفي صیب د دے پورته قیاس آرائي تعلق دے زما په خیال کښے دا د حضرت پیر بابا او د اخون درویزه بابا په باب کښے همسے یو بدګمانی ده ـ او د تاریخي واقعاتو په رڼا کښے دا قیاسات هیڅ مرسته نهٔ موی ـ

بایزید انصاری په کال $\frac{۹۳۲}{۱۵۲۵}$ھ کښے د جلندهر (پنجاب) په مقام زیږیدلے وو ـ او همایون په سن $\frac{۹۴۷}{۱۵۴۰}$ھ کښے د شیرشاه دلاسه تښتیدلے وو ـ دغه وخت بایزید ایله د څوارلس پنځلس کالو یو هلک وو ـ او په تهوله پښتونخوا کښے څه چه په خپله علاقه کښے هم هغهٔ لا څه شهرت نهٔ وو موندلے ـ نو دغه وخت کښے خو د بایزید د تحریک د آغاز او د مغل سلطنت د مخالفت هیڅ وخه سوال نهٔ شی پیدا کیدلے ـ دا خبره هم د فکر وړه

چه همایون څه عالم الغیب هم نهٔ وو چه هغهٔ ته به د بایزید د تحریک د اجرا نه اګاهو د دے علم شوے وی - او د مغل سلطنت د حفاظت په غرض به ئے د مستقبل په تا بیا کښے پیر بابا د پښتنو علاقے ته رالیږلے وی - دا هم معلومه ده چه د بایزید د تحریک په آغاز کښے یوسف زی قبائیل د مغلو حکومت طرفدار هم نهٔ وو - بلکه په دغه ورځو کښے د پښتنو ټول قبائیل د مغل حکومت د اقتدار نه عملاً آزاد وو - په دے بنا د ښاغلی یوسفی دا قیاس چه پیر بابا به د دوآوے نه بونیر علاقے ته د مغل حکومت د مرستے او کومک په غرض راغلے وی درست نهٔ معلومیږی - لکه چه اووئیلے شول په دغه ورځو کښے د یوسف زو قبیله نهٔ خو د حکومت مخالفه وه او نهٔ په مرسته کښے - او هغه وجوهات چه د هغې په بنا پیر بابا د دوآوے نه د بونیر علاقے ته راغلے وو - وړاندے بیان شوی دی. د هغې نه دا صفا معلومیږی چه په دغه وخت کښے د مغلو او پښتنو ترمینځه څه موافقت یا مخالفت نهٔ وو - او نهٔ د پیر بابا په راتلو کښے څه سیاسی غرض پټ وو. البته دا درست ده چه د دے نه څه لږه موده پس د اکبر د پالیسئ په نتیجه کښے د مغل حکومت او قبیله یوسف زی ترمینځه د تصادماتو یو اوږده سلسله شروع شوه - ولے د دے تصادماتو نه هم د دے پورته قیاس ارایئ مرسته نهٔ کیږی -

هم په دے ډول د ښاغلی محمد عبدالشکور خان دا وینا هم درسته نهٔ معلومیږی کوم چه دے ښاغلی د «دبستان مذاهب» په حواله لیکلی ده - په دے لړ کښے دا ښاغلے وائی چه « د بایزید انصاری او حضرت سید علی ترمذی او اخون درویزه بابا مخالفت د سنه ۹۷۹هـ / ۱۵۷۲ء نه شروع شوے دے - څکه چه هم په دغه زمانه کښے بایزید د پښتنو په غرونو کښے کامل اقتدار موندلے وو - او هغه په خپل مسلک کښے د خلقو د راوستلو په غرض په "جار" لګیا وو او د دهٔ یو مقصد د پښتنو اتحاد هم وو[1] - »

لکه چه مو وړاندے وئیلی دی بایزید انصاری په کال سنه ۹۳۲هـ / ۱۵۲۵ء کښے زیږیدلے وو او هغهٔ به په سنه ۹۷۹هـ / ۱۵۷۲ء کښے ایله د اولس[12] کالو یو ځلمے وو - دغه وخت کښے هغهٔ د پیرئ دعوه نهٔ وه کړی بلکه د هغهٔ د خپلے وینا مطابق هغهٔ د حصول علم او بیعت په سلسله کښے د خپل پلار سره په بحث و تکرار کښے لګیا وو - او څه رنګ چه بایزید په خپله وائی پلار هغه خپلے مرضئ ته نهٔ پریښودلو. په کومو ورځو کښے چه هغهٔ د خپل تربور شیخ اسماعیل

---

[1] د صراط التوحید دیباچه صفحه «ک»

نه د بیعت اراده لرله. د بایزید د خپلو الفاظو مطابق هغه لا ځلمی وو. او پلار ته ئې په دې الفاظو کښې وئیلی وو "چه په هلکوالئ کښې د حج او حصول علم نه منع کړم. اوس د ځوانئ په حالت کښې توبه اوباسم. نو د پیر (خواجه اسماعیل) بیعت ته مې نه پرېږدې[1]. د دې نه دا صفا معلومیږی چه د اوولسو اتلسو کالو په عمر کښې یعنی د سنه ۹۴۹-۵۰ھ په خواوشا کښې هغهٔ د روحانی سکون او فیض د حصول په لړ کښې د خپل ځان د پاره څه لار نهٔ وه اختیار کړی. نو په دې ورځو (سنه ۹۴۹-۵۰ھ) کښې د پښتونخوا په غرونو کښې د شغهٔ د کامل اقتدار او غلبې هڅو سوال نهٔ پیدا کیږی. او نهٔ په دغه ورځو کښې د پیر بابا او اخون درویزه سره د هغهٔ د مناظرو اغاز شوې دې.

د بایزید د یو سفر حال د "صراط التوحید" نه معلومیږی. په دې سفر کښې بایزید د تجارت په غرض قندهار ته تلې وو. ولې د تجارت نه علاوه د بایزید یو غرض د پیرِ کامل تالاش هم وو. په دغه وخت کښې د بایزید د وینا مطابق د قندهار حاکم بیرم خان وو. بیرم خان د همایون دلوری نه په سنه ۱۵۴۵ء کښې د قندهار حاکم مقرر شوې وو. او د سنه ۱۵۵۲ پورې د قندهار حاکم وو. نو موږ دا قیاس کولې شو چه بایزید به د قندهار دا سفر د سنه ۹۵۲ھ / ۱۵۴۵ء په خوااوشا کښې کړې وی. او دغه وخت به د بایزید عمر شل کاله وو. په دې سفر کښې د بایزید د وینا مطابق هغهٔ ته د پنځو کالو د مکملې چیلې هدایت هم شوې وو. چنانچه د هغهٔ د وینا مطابق د دې نه پس هغه په خپل کور کښې پنځه کاله چیله نشین وو. امکان کیدې شی چه د هغهٔ دا چیله به په کال سنه ۹۵۷ھ / ۱۵۵۰-۵۱ء کښې ختمه شوی وی. د دې چیلې نه پس بایزید د خپل دعوت د عام کولو آغاز اوکړو[2]. لیکن په دغه وخت کښې هغهٔ لا هم د څه مؤثر اقتدار او شهرت خاوند نهٔ وو. دا هغه ورځې وې چه د کامران او همایون ترمینځه د کابل د تخت د پاره جنګونه روان وو. او غور یا خیل پښتانهٔ چه وروستو د بایزید په مریدانو کښې شامل شول اکثر د کامران په مرسته او د هغهٔ د پاره به د همایون سره په جنګونو کښې ښکیا وو.

دا قیاس چه بایزید به د خپل دعوت اغاز د سنه ۹۵۷ھ / ۱۵۵۰-۵۱ء نه کړې وی. د بایزید د خپلې وینا نه هم مرسته موی. بایزید خپل کتاب صراط التوحید په کال سنه ۹۷۸ھ / ۱۵۷۰-۷۱ء کښې

---

[1] صراط التوحید ص ۷

[2] صراط التوحید ص ۲۰-۲۱

تصنیف کړے او ددے کتاب په ذریعه ئے دخپل مسلک دعوت دهغه وخت امیرانو او بااقتداره خلقو ته ورکړے دے. دا کتاب د بایزید دیوویشت کلیزے مجاهدے، غور و فکر او ریاضت نه پس لیکلے شوے دے. په دے بنا موږ دا ویلے شو چه د بایزید د مسلک آغاز د صراط التوحید د تصنیف نه یوویشت کاله وړاندے په سنه ۹۵۷ھ (۱۵۵۰-۵۱ء) کښے شوے دے. ولے دے تحریک شهرت او عروج د سنه ۹۷۸ھ (۱۵۷۰-۷۱ء) نه پس پس موندلے دے. یعنی چه کوم وخت بایزید دخپل مسلک دعوت د دے کتاب په ذریعه د پښتو نخوا امیرانو، عالمانو او بااقتداره خلقو ته ورکړو. نو ددے نه پس دهغهٔ د تحریک سره د اتفاق او اختلاف اغاز هم اوشو. ددے قیاس مرسته د اخون درویزه د تذکرے نه هم کیږی.

اخون درویزه وائی چه «هرکله دغه ملعون (بایزید انصاری) شهرت بیا موند نو خپل ځان ته ئے «پیر روښان» اوویل. او په څلور طرفه لکه کابل هندوستان او کوهستانونو ته ئے خطونه اولیږل. خلقو ته ئے د خپلے پیروئ او اتباع دعوت ورکړو. په دے ډول حضرت شیخ علی ترمذی ته هم ددهٔ دعوت رااورسید. او هغهٔ چه ددهٔ د حالاتو نه خبرشونو وے وئیل چه د پښتنو په سرلویه بلا نازله شوه. اوچونکه په دے اطرافو کښے د اسلام بادشاه نشته. نو ددهٔ هلاکت به ډیر گران شي[۱].

د پښتنو په تاریخ کښے بایزید انصاری په متضادو صفتونو متعارف شوے دے. دځنے شدید قسم مذهبی عالمانو چه سرکرده ئے اخون درویزه بابا دے له خوا دیوملحد، بے دین، بدعقیده او دیوداسے چالاک پیر په حیثیت یاد شوے دے. چه دخپل زور بیان، قوت استدلال او دانشمندئ په برکت ئے په پښتنو عوامو کښے ډیر اثرورسوخ حاصل کړے وو. او دخپلے پیرئ نقش ئے په خلقو کښینولے وو. دغه ډله ورله د ډیر تعصب له کبله «پیر تاریک» وائی. ولے د شلمے صدئ اکثر محققین او لیکوال ئے په حقیقت کښے یو لوئے رهنما، مذهبی مبلغ، پوه سیاستدان او دخپلے زمانے یو بنهٔ ادیب گنړي. او د پښتنو اکثر لیکوال ئے د یو مذهبی رهنما نه علاوه یو لوئے سیاسی قائد ستر ادیب، د مغلو د استبداد او استعمار لوئے مخالف او د پښتنو د آزادی لوئے مرستیال او بانی گنړي. او د یو داسے نومیالی او جنگیالی جرنیل په ډول ئے یادوی چه که یو طرف ته هغه د پښتون قام د ازادئ او ننګ و ناموس د تحفظ په لړکښے توره په لاس د

---

[۱] تذکرة الابرار ص۱۵۱

مغلو مقابله کوله - نو په بل لوري د پښتنو په ادبي او سیاسي تاریخ کښې هم پائیدار نقشونه پریښول - د غه وجه ده چه نن ورځ بایزید انصاري د یو مذهبي فرقې د رهنما نه علاوه د یوه سیاسي ډلې د قائد په ډول زیات مشهور دے -

ترکومه چه د بایزید د الحاد او بد عقیدګئ تعلق دے - تر ډیره موده د دے په حقله ټول شهادتونه د اخون درویزه په اقوالو او لیکنو مبني وو - او ټول یکطرفه وو - په دے بنا د بایزید د عقائدو په حقله په غیرجانبدارانه طریقه اظهار کول یو ډیر ګران کار وو - ولے د بنه مرغه اوس د بایزید خپل تصنیفات لکه خیرالبیان[۱] او صراط التوحید[۲] وغیره موندلے شوي دي - د صراط التوحید د مطالعې نه د بایزید حالات او تر ډیره حده د هغهٔ مذهبي خیالات او عقائد څرګندیږي - د دے کتاب د مطالعې په رڼا کښې دا ویل زیاتے نهٔ دے چه کوم الزامات چه د اخون درویزه له خوا هغهٔ ته منسوب شوي دي هغه بیخي غلط او د مسلک د اختلاف نتیجه ده - برعکس د دے د صراط التوحید د مطالعې په رڼا کښې به دا ویل بے ځایه نهٔ وي چه بایزید یو متشرع صوفي وو - او د هغهٔ د امقصد وو چه د شریعت د پیروئ او پابندئ په رڼا کښې خپل پیروکار د روحانیت اعلیٰ مدارجو ته اورسوي - د دے مقصد د حصول په لړ کښې هغهٔ اول د تحریر و تقریر او پند و نصیحت نه کار واخستلو - ولے چه په دے سره په خپل مقصد کښے کامیاب نهٔ شو نو د توره چلولو نه ئے هم ځان او نهٔ ژغورلو -

دا خبره هم د فکر وړ ده چه حضرت اخون درویزه چه په بایزید کوم الزامات لګولي دي - هغه دومره شدید، خوفناک بلکه شرمناک دي چه د داسے صفاتو یو سړے په مسلمانانو کښے بالخصوص په پښتنو کښے دومره اثر و رسوخ نهٔ شي حاصلولے څومره چه بایزید انصاري په پښتنو کښے حاصل کړے وو - په دے بنا دا الزامات قطعي د مسلک د اختلاف نتیجه ده - او صداقت ته نزدو نهٔ معلومیږي -

د بایزید انصاري تحریک په خپل آغاز کښے بیخي یو مذهبي او اصلاحي تحریک وو - او د سیاست سره ئے څه تعلق نهٔ لرلو - اګر چه وروستو داسے حالات پیدا شول

---

[۱] دا کتاب د ښاغلی مولانا عبدالقادر ډائریکټر پښتو اکیډیمئ په زیار د جرمني د یو کتب خانې نه حاصل کړے شوے دے - او اوس په پښتو اکیډیمئ کښے موجود دے -

[۲] دا کتاب د پېښور د عجائب ګهر مهتمم ښاغلی عبدالشکور خان پیدا کړے او چاپ کړے دے -

چه دے خالص مذهبي او اصلاحي تحريک سياسي رنګ اختيار کړو ـ که چرے موږ د بايزيد د تحريک جاج په ديانتدارۍ سره واخلو نو دا ظاهره ده چه د بايزيد د مسلک نه به ضرور اختلاف کيدلو ـ بايزيد په خپلو نظرياتو او معتقداتو کښے حد په صورته انتها پسند وو. دخپل دعوت د آغاز سره هغهٔ د عالمانو، شيخانو او با اقتداره خلقو په اعمالو، عقائدو او طرز زندګۍ سخت تنقيد شروع کړو ـ او د خپل مسلک نه برخلاف خلق ئے د مرو په الفاظو ياد کړل ـ د دے لازمي نتيجه به د دے خلقو د لورى نه د بايزيد مخالفت وو ـ دا خلق د بايزيد د نظريۓ مطابق ژوند تيرولو ته تيار نهٔ وو ـ د بايزيد په اقتدار کښے د هرقسم با اقتداره خلقو اقتدار ته خطره وه ـ دغه وجه وه چه د کابل مغل حکمرانانو ته چه د هغهٔ دعوت اورسيد نو هغوى ته هم خپل اقتدار په خطره کښے ښکاره شو ـ او هغوى هم د دے تحريک مخالف شول ـ دغه شان د عقيدے او مسلک د اختلاف نه علاوه د بايزيد د تحريک په مخالفت کښے سياسي اغراض هم داخل شول ـ

د بده مرغه د بايزيد د مخالفے ډلے مشر حضرت اخون درويزه هم په خپلو خيالاتو نظرياتو کښے انتها پسند وو ـ د هغهٔ په معيار هم ډيرکم خلق پوره ختل ـ که چرے بايزيد د خپلو مخالفينو مال لوټل جائز ګڼل نو په بل لور اخون درويزه او د هغهٔ هم خيال عالمانو به بايزيد او د هغهٔ پير و کار د ملحد، مشرک، کافر او بے دين په الفاظو يادول ـ او د دوى وژل او تباه کول به ئے ثواب ګڼلو ـ د دے انتها پسندۍ نتيجه وه چه دواړو ډلو د خپلو مخالفينو د خيالاتو او جذباتو د قدر او برداشت طاقت او نهٔ لرلے شو ـ او د بحثونو او مناظرو په نتيجه کښے د دواړو ډلو ترمينځه د اختلاف او افتراق يوه داسے ژوره کنده حائله شوه ـ چه د هغے ډکول ګران بلکه ناممکن شول ـ

د بايزيد تحريک ډير زر په عوامو کښے خور شو ـ او د پښتنو د هرے قبيلے خلق په دے کښے شامل شول ـ دغه شان د بايزيد اقتدار په ټوله پښتونخوا کښے قائم شو ـ ليکن د بايزيد په اقتدار کښے د مغل حکومت د پاره لويه خطره وه ـ نو دا يقيني وه چه د مغل حکومت له خوا به د دے تحريک مخالفت ضرور کيدلو ـ چونکه پښتون اولس په هغه تحريک کښے چه د مذهب په نامه شروع شوے وى ـ ډير زر حصه اخلي ـ نو د بايزيد د تحريک مخالفت هم په مذهبي رنګ کښے د مغل حکومت په سرپرستۍ کښے په باقاعده شکل کښے شروع شو ـ دغه شان پښتانهٔ هم په دوؤ ډلو کښے تقسيم شول ـ د بايزيد په مرسته د عوامو طاقت وو ـ او د هغهٔ د مخالفينو (اخون درويزه) په کومک د مغل حکومت اخلاقي

حمایت او شاید چه مالي مدد هم وي - دغه وخت هرې ډلې د ژبې او قلم په ځائے تورې ته اسره اوکړه - او د بایزید او د هغۀ د مخالفینو ترمینځه د جنګونو یو سلسله شروع شوه -

د بایزید د پلار نامه عبدالله وه چه اصلي استوګنه ئې په کانیګرم کښې وه - دا کلے د وزیرستان په علاقه کښې د مسعود قبیلې په مینځ کښې د سطح سمندر نه اووه زره فټه اوچت واقع دے - د دے کلي ټول استوګن د اورمړ قبیلې سره تعلق لري - او تر اوسه ئې خپل اورمړي ژبه خوندي ساتلې ده - بایزید انصاري په کال سنه ٩٣٢هـ / ١٥٢٥ع کښې په جالندهر (پنجاب) نومې ښار کښې زیږیدلے وو - دغه وخت د دۀ پلار او مور په دے ښار کښې استوګن وو - او لږه موده پس د دے ځائے نه کانیګرم ته راغلل - د بایزید پلار قاضي عبدالله یو عالم سړے وو - په خپل کلي کښې یو مدرسه جوړه کړې وه - او هغه ئې د خپل یو شاګرد ملا پائنده خان په تحویل کښې ورکړې وه - بایزید انصاري هم په دے مدرسه کښې څه قدر تعلیم حاصل کړو - ولے د ابتدا نه هغه روحانیت ته مائل وو - او د پلار د شدید خواهش باوجود هغۀ د مروج علمونو تکمیل او نۀ کړے شو - او د کامل پیر غرضمند وو - د خوانۍ په موده کښې ئې د هندوستان، قندهار او سمرقند سفرونه هم اوکړل - په دے سفرونو کښې د تجارت نه علاوه د هغۀ یو غرض د پیر کامل تلاش هم وو - د هندوستان د یو سفر په دوران کښې د جالندهر په مقام هغۀ د لودي خاندان د یوے جینۍ سره چه شمسۀ نومیده وادۀ اوکړۀ - او څه موده پس خپل کلي کانیګرم ته راغے -

د اخون درویزه د وینا مطابق د بایزید د عقائدو اولنے مخالف د هغۀ خپل پلار وو - د پلار او ځوی د عقیدے د اختلاف دومره زیات شو چه په خپلو کښې اوجنګیدل. او د عبدالله د لاسه بایزید په چړے ژوبل شو - د دے نه پس بایزید د کور نه لاړ - او په یو غرۀ کښې په یو غار کښې دیره شو - او چه زخمونه ئې جوړ شول - نو په ظاهره کښې ئې د خپلو عقائدو نه توبه اوویستله - او بیا ننګرهار ته لاړ او هلته د ملک سلطان احمد کره دیره شو - د درویزه مطابق مهمند چونکه ټول سني مذهب خلق وو - او هلته بایزید د خپلو عقائدو اظهار نۀ شو کولے - نو د ننګرهار نه پېښور ته راغے - او په "خلیلو" کښې دیره شو - دلته ئې د پیرۍ غږ خور شو - خلق پرے رامات شول - نو ښځې ئې مریدان شول - په دغه ورځو کښې بایزید د خپل مسلک د تبلیغ په لړ کښې یو کتاب تصنیف کړو - چه په څلورو ژبو عربۍ، فارسۍ، هندي او پښتو کښې

ليكلے شوے وو - د دے كتاب نامه خيرالبيان ده[1] - چه په خلقو كښے ئے شهرت بيا موند. نو خپل ځان ئے پير روښان اوباله - او مختلفو اطرافو ته ئے خطونه اوليږل - او خلقو ته ئے د خپلے پيروئ عام دعوت وركړو - د دے دعوت په جواب كښے د اطرافو نه عالمان ، شيخان د هغهٔ خواله راغونډ شول - او د هغهٔ بيعت ئے اوكړو - دغه شان يو دعوت نامه سيد علی ترمذی (پير بابا) ته هم اورسيده - او د دے دعوت نامے په جواب كښے پير بابا د هغهٔ سره مناظرے ته تيار شو -

د حضرت سيد علی او بايزيد انصاری ترمينځه وړومبۍ مناظره په هشتنغر كښے او شايد چه په غله ډهير كښے شوی وه - ولے په مناظره كښے د بايزيد پړكول ګران وو - د هغهٔ عقلی دلائل به دومره مضبوط او وزن دار وو چه په عالمانو به د هغې په اوريدلو سر ګرزيدلو - دا مناظره بے نتيجے ختمه شوه - د دوی په مينځ كښے بله مناظره هم اوشوه - ولے څه فيصله اونهٔ شوه - په دويم ځل اخون درويزه د يوسف زو د يوے ډلے سره د بايزيد د مناظرے په غرض هشتنغر ته راغے - ولے د درويزه د وينا مطابق بايزيد مناظرے ته حاضر نهٔ شو - د دے مناظرو تاريخونه معلوم نهٔ دی - ليكن په اكثر واحتمالاتو دا مناظرے به د سنه ۹۷۸ھ (۱۵۷۰-۷۱ء) نه پس شروع شوی وی - دا سے معلوميږی چه دغه وخت

---

۱ د مذهبي مسلک د اختلاف په وجه اخون درويزه بابا د دے كتاب ته « شرّالبيان » او « وائى - او دا سے هم وائى چه د دے كتاب په تصنيف كښے د مشهور شاعر ملا ارزانى لويه برخه وه -

د « خيرالبيان » نه علاوه د بايزيد بل كتاب « صراط التوحيد » په فارسئ ژبه كښے دے - دا هم يو مذهبي كتاب دے - او د تصوف رنګ په كښے غالب دے - د دهٔ يو بل كتاب « حالنامه » ياديږی چه هغه ناياب دے - په حالنامه كښے د پير روښان حالات و واقعات بيان شوی دی -

دا خبره د فكروړ ده چه كه د بايزيد د مذهبي او صوفيانه عقائدو سره څوک اختلاف هم اولری - ولے دا خبره په خپل ځائے بے مناسبه نهٔ ده - چه د بايزيد تحريک په پښتوغوا كښے يو لوئے صوفيانه ادب پيدا كړو - دا ادب اكثر په نظم كښے دے - او د دے په تخليق كښے ارزانی ، مخلص ، ميرزا خان انصاری او شيخ دولت الله لوهانی په خصوصيت سره لوړ مقام لری -

ملا ارزانی د پښتنو قبائيلی تقسيم كښے په سړبن كښے څمند دے - او په دے ځانګه كښے د خويشكو د ذيلی ځانګے عزيز خيل سره تعلق لری - د پلار نوم ئے برهان دے -

د بایزید اقتدار په عوامو کښې زیات وو. او اخون درویزه چه په مناظرو کښې په بایزید بریالے نهٔ شو. نو د مذهب د حفاظت په نوم ئې د کابل د مغل حکومت نه د کومک سوال اوکړو. چنانچه د دے نه پس د مغل صوبه دار محسن خان او بایزید ترمینځه د جنګونو سلسله شروع شوه. او په یو جنګ کښې بایزید ګرفتار کابل ته بوتلے شو. او د "دبستانِ مذاهب" مطابق د شهزاده محمد حکیم په حضور کښې پیش کړے شو. د شهزاده په حکم بایزید د عالمانو سره مناظره اوکړه. دغه عالمان د بایزید د دلائلو په مخکښې لاچار شول. چنانچه شهزاده محمد حکیم هغه په عزتمنده طریقه پرےښودلو.[1]

د آزادئ نه پس هغه بیا هشتنغر ته راغے. او د خپلو مریدانو تنظیم ئې اوکړهٔ. بیا تیراه ته لاړ. افریدی، اورک زی او بنګښ قبائیل ئې هم مریدان شول. خلیل، مهمند او مهمنزی ئې د وړاندے نه مریدان وو. د یوسف زو قبیلے یوه غالبه برخه هم د هغهٔ په ډله کښې شامله وه. دغه شان بایزید په اول ځل د سرحدی پښتنو ټول قبائیل په یو مرکز راغونډ کړل. او په تیراه کښې د پښتنو د یو ازاد حکومت بنیاد کیښود. او د پښتنو د زمکے نه ئې د مغل اقتدار لرې کولو فیصله اوکړه.

مغل حکومت چه د بایزید د سرګرمیو نه خبر شو نو په تیراه ئے حمله اوکړه. د "چوره" په مقام د فریقینو ترمینځه جنګ اوشو. په دے جنګ کښې مغل او تښتیدل. او د هغوی دوه سوه او شل سړی اومړل. د دے نه پس بایزید خپل طاقت نور هم زیات کړو. او په ننګر هار ئے حمله اوکړه: خپل کیمپ ئے په "بړو" نومے کلی کښې قائم کړو. د شینوارو په علاقه کښې د "توراغه" په مقام د فریقینو ترمینځه یو سخت جنګ اوشو. په دے جنګ کښې مغل کامیاب شول. د بایزید لښکر او تښتید و. په خپله بایزید هم پیاده او تښتیدو. په لاره کښې د سفر د سختیو او ګرمئ له کبله "ځل" اووهلو. او په ډیرے خوارئ کلپانئ (ضلع مردان) ته راورسیدو. او دلته کښې وفات شو. او د هغهٔ ځامنو په هشتنغر کښې

---

[1] اخون درویزه وائی چه بایزید د خپل خلاصی په عوض درے سوه مثقاله سپین زر او یوه وینځه د مرزا حکیم ځنے وزیرانو ته د رشوت په دول ورکړه. او ځان ئے خلاص کړو. (تذکرة الابرار ص۱۳۵) لیکن دا د اخون درویزه زیاتے معلومیږی. په اصل کښې مرزا حکیم د بایزید د مریدانو د بغاوت د خطرے د وجهے نه هغه پرے ښودلے وو. او په مناظره کښې هم هغه کامیاب شوے وو. نو د هغهٔ د قیدولو هیڅ څه جواز نهٔ وو.

دفن کړو۔ د بایزید د وفات په تاریخ کښې اختلاف دے۔ ښاغلی عبدالشکور خان د "صراط التوحید" په دیباچه کښې د مستشرق "گریرسن" په حواله د دهٔ د وفات تاریخ سنه ۹۹۳ھ / ۱۵۸۶ع لیکلے دے. او ځینې نور داسې هم دی چه د دهٔ د مثنوی په خیال کښې د دهٔ تاریخ وفات د سنه ۹۸۰ھ او سنه ۹۸۹ھ ترمینځه مینځه چرته یو کال دے۔ زما په خیال کښې وړومبې تاریخ وفات بیخې غلط معلومیږی۔ او په اکثرو احتمالاتو د دهٔ د وفات کال سنه ۸۲-۹۸۶ھ ممکن کیدے شی۔ لکه چه د وروستو واقعاتو نه دا مرسته مومی۔

د بایزید پنځه ځامن وو۔ شیخ عمر، نورالدین، خیرالدین، کمال الدین او جلال الدین د پلار نه پس شیخ عمر د پلار جانشین شو۔ اگرچه د اخون درویزه د تبلیغ په نتیجه کښې د یوسف زو ځینې خلق د بایزید نه مخالف وو۔ ولې ډیرے په مرسته هم وو۔ د پلار نه پس شیخ عمر د پښتنو په علاقه یو مذهبي حکومت قائم کړو۔ افریدی، اورک زی بنگښ، خلیل، مهمند، مهمنزی او د یوسف زو څه حصه ټول د دهٔ مریدان وو۔ ولې روستو د یوسف زو قبیله د شیخ عمر نه برخلافه شوه۔ د دے مخالفت یوه وجه خو د شیخ عمر د مسلک برخلاف د اخون درویزه تبلیغی کوششونه وو۔ لیکن اصلی او بنیادی وجه ئے دا وه چه د پښتنو خانان مشران تر ډیرے موده د یو مذهبي اقتدار د اثر لاندے ژوند تیرولو ته غاړه نهٔ ایږدی۔ د شرعی قوانینو بالخصوص د عشر او زکوٰة په پابندی اداکول، د وادهٔ ښادئ او مرگ وغیره په حقله ځنې مخصوص قبیلوی رواجونه پرے ښودل د دوی د پاره گران دی۔ د دے نه علاوه د یو مرکزی اقتدار د لاندے د خانانو، ملکانو په ځپل ذاتی اقتدار کښې هم فرق راځی۔ او دوی د ځپلے مرضئ مطابق ټول پرانستل نهٔ شی کولے۔ د دے وجوهاتو په بنا دوی د مذهبي اقتدار نه د ازادئ د پاره څه بهانے لټوی۔ د غه وجه وه چه هرکله د اخون درویزه له خوا د شیخ عمر د مذهبي حکومت برخلاف تبلیغ شروع شو۔ نو د یوسفزو خانانو او ملکانو هم د هغهٔ مرسته اوکړه۔ او د دے نتیجه دا شوه چه د بایزید د خاندان سره هم هغه شان سلوک اوشو کوم چه درے سوه کاله وروستو هم د دے پښتنو د لاسه د سید احمد بریلوی د مجاهدینو سره شوے وو۔ د اخون درویزه د وینا مطابق د شیخ عمر او د یوسف زو د مخالفت وجه دا وه چه د یوسف زو یو ملک همزه خان د شیخ عمر د اطاعت نه انکار او کړو۔ او شیخ عمر په هغهٔ لښکرکښی اوکړه۔ او د هغهٔ مال مویشئ ئے اونیول۔ دا خبره د یوسف زو نورو ملکانو ځپله بے عزتی اوگڼله. او د هغهٔ په مرسته اودریدل۔

د شیخ عمر او یوسف زو ترمینځه اول جنګ د « سُرکاوی » په مقام اوشو۔ په دے جنګ کښے شیخ عمر کامیاب شو۔ دویم جنګ د « میني » (تفصیل مواښې) په مقام اوشو۔ په دے جنګ کښے هم شیخ عمر بریالے شو۔ د دوی ترمینځه دریم جنګ په « باړه » اوشو۔ دا کلے د تهو پې (تفصیل مواښې) نه دوه میله لرے دقطب په لور واقع دے۔ په دے جنګ کښے یوسف زی بریالی شول۔ شیخ عمر او خیرالدین په تیښته لاړل۔ او په سیند پورے وتل۔ ولے په تربیله کښے د دله زاکو دلاسه اووژلے شول۔ نورالدین هشنغر ته اوتښتید او هورے د « کوهرو » دلاسه اووژلے شو۔ د بایزید کشر ځوئے « جلال الدین » چه وروستو د روښنائی تحریک قائد او « جلاله » په نوم مشهور شو۔ هغه وخت کښے د ځوارلسو کالو یو ځلموټے وو۔ په دے جنګ کښے ډیر بد بد ژوبل او د یوسف زو د لاسه سیند ته ګزارشو۔ ولے د مندڼو د قبیلے د « امازو » ځانګے خلقو د سیند نه راوښکلو۔ دا خلق د هغهٔ د ښکلا او کم عمرئ نه متاثر شول۔ نو د خپل ځان سره ئے ژوندے اوساتلو۔

د دے جنګ په موقع د بایزید هډوکی چه د درویزه دوینا مطابق شیخ عمر به د ځان سره د تبرک په ډول ګرځول۔ د صندوق نه راوویستلے شول او اوسوزولے شول۔ او ځینے ئے سیند ته ګزار کړل۔ درویزه د « میرداد دله زاک » دځلے دا نقل کوی چه د بایزید کپرئ هغهٔ د سیند په مینځ کښے په کاني داسے اوویشتله چه ټوټے ټوټے شوه۔ د بایزید کونډه ښځه ئے یو دم ته حواله کړه۔ دا کار په پښتنو کښے انتهائی ذلت او سپکاوے ګڼلے شی۔

عرض د یوسف زو او دله زاکو دلاسه د مذهبي لیونتوب او انتقامی جذباتو زیر اثر د بایزید دکورنۍ سره انسانیت سوز سلوک اوشو۔ په دے جنګونو کښے مسلمان پښتون د مسلمان پښتون دلاسه په ډیرے بے دردئ او ذلت قتل شو۔ اخون درویزه په ډیرے بے تکلفئ دا خلق دکافرانو په نوم یادوی۔ او په ډیر اطمینان داسے وائی چه « یوسف زو د دے کافرانو مالونه لوټ کړل۔ د دوئ ښځے او بچي ئے غلامان کړل۔ او د دوی ټوله دله ئے تار په تار کړه۔

دغه ورځ (۱۵۸۱ء) وے چه اکبر د مرزا حکیم دکشالے نه پس د کابل نه راستون شوے او د اټک په مقام ډیره وو۔ چه د هغهٔ په خدمت کښے د بایزید یو خلیفه حاضر شو او د یوسف زو دلاسه چه د بایزید دکورنئ سره کوم ظلمونه شوی وو۔ د هغے برخلاف ئے د اکبر په دربار کښے دادخواهی اوکړه۔ او د یوسف زو د بند نه ئے د جلال الدین د

خلاصولو خواست اوکړو- اکبرچه د دے واقعاتو نه خبرشو نو نهٔ صرف ئے جلال الدین د یوسف زو دبند نه خلاص کړو . بلکه خاصه مهربانی ئے ورسره هم اوکړه - د مستر کیرو په خیال کښے د دے مهربانئ وجه دا کیدے شي چه د بایزید تحریک اکبر د خپل " دین الٰهی " د تحریک سره په ډیرو خبرو کښے یکسان گڼلو - او د دے تحریک په خوریدلو سره د هغهٔ خپل مقصد ته هم فائده رسیدله" د دے قیاس مرسته دا خون درویزه د قول نه هم کیږی - د دے وائی چه چونکه اکبر د دین محمدیؐ نه روګرځان شوے وو- نو هغهٔ انصاف او نهٔ کړو- او د ے ته ئے او نه کتل . چه یوسف زو خود بایزید داولاد سره دا سلوک محض د دین محمدیؐ د حفاظت په غرض کړے وو۔

غرض د بایزید د تحریک مخالفینو د خپل طرف نه د هغهٔ د کورنئ په تباهئ او بربادئ کښے څه کمے او نهٔ کړو- او په ظاهره کښے دا سے معلومیده چه دا تحریک بیخی ختم شو. ولے د بایزید د ایرو نه د " جلاله " په شکل کښے د هغهٔ تحریک بیا دا سے راژوندے شو چه صرف دا نه چه اکبر ئے په خپلے مهربانئ ستومانه او پښیمانه کړو بلکه د اکبر د جانشینانو (جهانګیر او شاه جهان) په زمانه کښے کم و بیش پنځوس کاله د مغلو د اقتدار برخلاف د پښتنو د آزادئ جنګ چه اغاز ئے بایزید کړے وو- او وروستو د هغے قیادت د بایزید د اخلافو په لاس کښے وو- په دا سے شدت او قوت جاری اوساتلو چه د مغل اعظم ټول شان و شوکت او عظیم قوت د هغے په مخکښے د شګو دیوال ثابت شوے وو- د خپلے آزادئ کومه جذبه چه د بایزید تحریکیا په دے قبائیلی پښتنو کښے پیدا کړی وه . هغه تر اوسه لا ژوندئ ده۔

لکه چه اوویئلے شول جلال الدین د یوسف زو د قید نه د اکبر په مداخلت خلاص شو- ولے د اکبر په دربار کښے خپله حاضری جلال الدین د نظربندئ نه کمه او نهٔ ګڼله . د غه وجه وه چه هغه ډیر زر د اکبر د دربار نه او تښتیدو - تیراه ته لاړ او هلته کښے د خپلو مریدانو په راغونډولو کښے لګیا شو- او په لږو ورځو کښے ئے دومره طاقت حاصل کړو چه د اکبر فوځی طاقت د هغهٔ د تسخیر نه لاچاره شو - او دا سے کارنامے ئے اوکړے چه د هغے په وجه د هغهٔ نوم د روښنائی تحریک په سلسله کښے تر اوسه ژوندے دے .

# اکبر او د شمال مغربي سرحد

# پښتانه قبائل

لکه چه وړاندے مو وئیلي دي. د همایون د وصیت مطابق د کابل صوبه د مرزا حکیم رسیدلې وه. او د همایون د مرګ په وخت کښے مرزا حکیم لا د دریو کالو ماشوم وو. منعم خان نومے یو سردار چه د همایون ډیر اعتباري امیر وو. د مرزا حکیم اتالیق او سربراه وو. او د حکیم د نائب په حېث به ئے د حکومت فرائض ادا کول.

اکبر د خپلے تخت نشینۍ په څلورم کال (۱۵۶۰ء) خپل اتالیق او منتظم بیرم خان د خپلے عهدے نه معزوله کړو. او د هغهٔ په ځائے د کابل نه منعم خان دهلي ته اوبللو. او هغه ئے د "خان خانان" په خطاب سره د بیرم خان په ځائے مقرر کړو. او د منعم خان د تلو نه پس د کابل حکومت د مرزا حکیم د مور "چوچک بیګم" لاس ته راغلو. دا میرمنه اګر که ډیره قابله او د ډیرے خاونده وه. ولے بیا هم د امیرانو او وزیرانو د لاسه ډیره زړتنګه شوه. په دے ورځو کښے د همایون یو بل ځوانے "امیر ابوالمعالي" چه د بیرم خان دوست او د اکبر د لورې نه د پنجاب حاکم وو. د بیرم خان د زوال په وجه د خپلے عهدے نه معزول شو. او د اکبر سره د څه ناکامه مقابلے نه پس په تیښته کابل ته راغے. "چوچک بیګم" د دهٔ په راتلو ډیره خوشحاله شوه. دے ئے خپل وزیر مقرر کړو او لور ئے هم په نکاح ورکړه.

"ابوالمعالي" اوس وزیر هم وو. او د مرزا حکیم اوښے هم. نو په ډیر قوت ئے د دربار فسادونه ختم کړل. او ټول انتظام ئے سم کړو. ولے ابوالمعالي دا کوشش شروع کړو چه د کابل حکومت خپل ځان ته کړي. چوچک بیګم د دهٔ په دے ارادے پوهه شوه. او د هغهٔ د قوت په کمولو کښے لګیا شوه. ولے هم په دے کوشش کښے د ابوالمعالي په اشاره اووژلے شوه. (۱۵۶۳ء)

د دے نه پس ابوالمعالي ته لار اوزګاره شوه. هغهٔ به د مرزا حکیم د نائب په حیثیت په کابل حکومت کولو. په دغه ورځو کښے مرزا حکیم لا د دولسو کالو کچه ځُله هلک وو. او د ابوالمعالي

په مخکښې ے وسه وو- د بدخشان حاکم مرزا سلیمان چه د ابوالمعالی په دے سرزورئ خبر شو نو هغه ډیر سوخت واخست- او په کابل ئے حمله اوکړه- په جنګ کښې ابوالمعالی اووژلے شو- او په کابل د مرزا سلیمان قبضه شوه- سلیمان خپله لور مرزا حکیم ته واده کړه او خپل یو سردار ئے د مرزا حکیم وزیر مقرر کړو- او بیرته بدخشان ته لاړ- ولے د مرزا حکیم او بدخشانی وزیر جوړه رانغله- او مرزا حکیم هغه د خپل وزارت نه معزول کړو- (۱۵۶۴ء)- په دے خبره مرزا سلیمان بیا په کابل راخوت- مرزا حکیم د هغهٔ د مقابلے طاقت نهٔ لرو- نو اکبر نه د مدد غوښتلو په غرض په ابا سیند راپورے وتو- دغه وخت د اکبر سره داویره پیدا شوه چه هسے نه چه مرزا سلیمان د کابل د قبضے نه پس چرته د هندوستان طمع او نهٔ کړی- نو سمدستی ئے د فریدون خان (چه د مرزا حکیم ماما وو) په ماتحتئ کښې د مرزا حکیم امداد ته یو فوځ اولیږلو-

فریدون ته د کابل د فتح کولو په نسبت دا غوره ښکاره شوه چه د دے فوځ په مدد په پنجاب قبضه اوکړی- ځکه چه په دغه ورځو کښې اکبر د بهار د پښتنو سره په جنګونو کښې مصروف وو- نو د خپل خوری (حکیم) سره ئے د پنجاب د قبضے منصوبه پخه کړه- او د دے منصوبے مطابق مرزا حکیم د پنجاب د قبضے په نیت لاهور ته روان شو- دغه وخت کښې اکبر هم د بهار د جنګ نه فارغ شوے وو- چه هغه د مرزا حکیم د منصوبے نه خبر شو- نو سمدستی په حکیم پسے روان شو- ولے اکبر لا په ستلج نهٔ وو پورے وتلے، چه مرزا حکیم هم د هغهٔ د راتلو نه خبر شو- او داسے وارخطایئ واخست چه هیڅ ته ئے هم او نهٔ کتل - او د خپل فوځ سره نیغ کابل ته لاړ- او په کابل ئے قبضه اوکړه- ځکه چه دغه وخت مرزا سلیمان بدخشان ته تلے وو - او کابل خوشې وو- مرزا حکیم چه کابل بیا ترلاسه کړو- نو د اکبر نه ئے د دے خپلے ګناه معافی اوغوښتله- او اکبر هغه معاف کړو-

اکبر د خپل پادر همایون د ناموافقو حالاتو په وجه په وړوکوالی کښې د هر قسم تعلیم (دینی یا دنیاوی) نه محروم پاتے شوے وو- دغه وجه وه چه هغه د مذهب اسلام د روح نه بیخی ناخبره وو- او د خپلے تخت نشینئ نه پس د ځنے ازاد خیاله عالمانو د صحبت په وجه ډیرے لارے شوے وو- او د مذهب اسلام په حقله ئے په زړهٔ کښې د نفرت او کرکے جذبات راټوټیدلی وو- لیکن په ابتداء کښې د سیاسی اغراضو او مصالحو پیش نظر هغه د دے نفرت داظهار نه ځان ژغورولے وو- ولے هرکله چه هغهٔ په راجپوتو او پښتنو کامیاب شو- نو هغهٔ د خپل سلطنت د استحکام په پرده کښې د اسلام نه څرګند انحراف اوکړو- او د مذهبی رواداری په نوم هغهٔ

د نورو مذهبونو سره داسې ژورتعلق پیدا کړو چه د اسلام ځینې بنیادی اصول ئې هم شا ته اوغورزول. هغهٔ ځینې غیر مسلم امیران یوائې دا نه چه د حکومت په کاروبار کښې ئې شریک کړل. بلکه د سلطنت په معاملاتو کښې ئې هغوی دومره د اثر ورسوخ خاوندان کړل. چه په هغې سره د برصغیر د مسلمانانو د مقتدر حیثیت جرړې کمزورې شوې. هغه د مسیحیانو، زردشتیانو، بامبرانو او سادوګانو سره ډیر ژور تعلقات پیدا کړل. او په دې لړکښې ئې ځینې داسې رسمونه اختیار کړل چه هغه د مذهب اسلام د بنیادی تصور توحید نه بالکل برعکس وو. مثلاً هغهٔ به د « اور » او « نمر » احترام کولو. هغه دې منبرې ته لیواله وو چه د هرقسم اقتدار (دینی او دینوی) په خپل لاس کښې واخلی. د اکثرو تولکواکو حکمرانانو په شان هغهٔ دا تلوسه لرله چه د شریعت اسلامی له خوا چه په یو مسلمان بادشاه کومې پابندئ عائد شوی دی. د هغې نه ځان ازاد کړی.

د دې ګمراهئ آغاز هغهٔ د سنه ۱۵۷۹ نه اوکړو. او هغهٔ اول د سلطنت د قاضیانو او مفتیانو اختیارات کم کړل. په دې لړکښې هغهٔ د اقتدار خواهشمند ځینې عالمان په خپل لاس کښې واخستل. او په هغوی ئې یو داسې فتویٰ جاری کړه. چه د « کومې شرعي یا فقهي » مسئلې په حقله د عالمانو ترمینځه اختلاف وی. نو د هغې په باب کښې به شهنشاه په حیثیت د سلطان عادل دا اختیار لری چه د خپلې مرضئ لارښوونه کړی. او په هغې عمل اوکړی په دې شرط چه هغه رائې د قران او حدیث نه مخالفه نهٔ وی. او د عوامو د فائدې مد نظر وی. د دې نه علاوه هغهٔ د حق پسنده عالمانو برخلاف داسې ذریعې اختیار کړې چه د هغې په وجه د مذهب پابند او حق پرست عالمانو ته په خپلو عهدو پاتې کیدل ګران شول. دیانتدار قاضیان او مفتیان د خپلو عهدو نه مات کړې شول. او د هغوی وظیفې بندې کړې شوې.

د دې نه علاوه هغهٔ یو نوې دین جاری کړو. چه په « دین الهٰی » مشهور دې. او داسې ملحدانه عقائد او طرز عمل ئې اختیار کړو چه د هغهٔ د یو مسلمان بادشاه د شان نه خلاف وو. د هغهٔ دا مقصد وو چه د دنیاوی اقتدار سره مذهبی اقتدار هم ترلاسه کړی. او د پیغمبرئ درجه حاصله کړی. د اکبر نه وړاندې علاوالدین خلجي ته هم د یو نوی دین د اجرا خیال پیدا شوې وو. ولې په هغهٔ کښې دومره معقولیت وو چه هغهٔ د یو امیر علاؤ الملک په نصیحت او تنبیهه د دې فاسد خیال نه منع شو. ولې نهٔ خو اکبر د مذهب اسلام څه اهمیت ګڼلو. او نهٔ د هغهٔ په امیرانو کښې د علاو الملک غوندې څوک

زړور او حق ګو امیر موجود وو. د اکبر دا نوے دین د مختلفو دینونو د یو څو داسے خبرو ګډ وډه وه کومے چه د اکبر خوښے وے. په دے کښے نهٔ یک رنګی وه او نهٔ یکسانی. د اکبر دا مقصد وو چه په دے طریقه به زه ټول خلق خوشحال کړم. ولے په حقیقت کښے ئے د یو څو تالی څټو امیرانو نه علاوه نور هیڅوک هم خوشحال نهٔ کړے شو.

د اکبر د رویے نه ټول حق پسنده مسلمانان خوا که هغه امیران وو او که عام اولس بیزاره او متنفر شول. او په مسلمانانو کښے یو عامه بے اطمینانی پیدا شوه. په کال سنه ۱۵۸۰ء کښے د بنګال او بهار پښتنو بیا بغاوت اوکړو. دا ځل مغل حاکمان هم د دوی ملګری وو. دے بغاوت د اکبر د ملحدانه عقائدو په وجه خوفناک شکل اختیار کړو. دا بغاوت داسے په مکمله طریقه شوے وو چه د اکبر سلطنت به ئے رغړولے وو. ولے د اکبر دوراندیشئ او د مرزا حکیم بزدلئ دا موقع خطا کړه.

د اکبر د بے دینئ خبرے په ټول ملک کښے خورے شوے وے. باغیانو هم ددے نه فائده واخسته. او د کابل سروئے هم خبرے اوکړے. مرزا حکیم ته ئے په دهلی د حملے دعوت ورکړو. د دوی دا خیال وو چه د بے دین اکبر په ځائے به فاسق حکیم د دهلی په تخت خلق برداشت کړی. اګر چه د مرزا حکیم مسلمانی هم څه دومره پخه نهٔ وه. هغهٔ به په ښکاره شراب څښل. لیکن د خلقو د تسلئ دپاره صرف دومره هم کافی وه چه مرزا حکیم د اکبر په شان ښکاره د اسلام نه انحراف نهٔ دے کړے.

د بنګال او بهار د بغاوت د شدت او د باغیانو د دعوت په وجه د مرزا حکیم په زړهٔ کښے هم د هندوستان د شهنشاهئ تلوسه پیدا شوه. په دے تلوسه کښے د هغهٔ ماما فریدون هم زیاتے راوستلو. هغهٔ حکیم ته اووئیل چه که چرے تا د بالښت نه سر اوچت کړو او لښکر او خوزیدلے نو د هندوستان ټول خلق به دِ په سر سترګو قبول کړی. د مرزا په زړهٔ کښے هم څه جوش پیدا شو. او هغه د فریدون په لمسون یو ځل بیا په پنجاب باندے حملے ته تیار شو. په اباسیند راپورے وتو. ولے د غه وخت د پنجاب ګورنر د اکبر اعتباری امیر مان سنګه وو چه د راجه بهګوان داس ځوئے وو. مان سنګه سره د حکیم د مقابلے د پاره پوره فوځ نهٔ وو. نو هغهٔ د "رهتاس" په قلا کښے څه لږ شان فوځ پرے ښودلو. او په خپله لاهور ته راغے. مرزا حکیم د رهتاس د قلا په فوځی کماندار څه دپکے اوکړے. ولے هغهٔ قلا حواله نهٔ کړه. مرزا هم د هغهٔ سره مقابله خوښه نهٔ کړه. او په مخه لاهور ته روان شو. او په یو باغ کښے دیره شو. د هغهٔ خوا طمع وه چه د لاهور خلق

به زما هرکلی او پخیر راغلی ته راشی - ولے هلته کښے خومان سنګه وو چه د اکبر یو ډیر وفادار جرنیل او د هغهٔ د مقاصدو لوئے همدرد وو - د مرزا حکیم توقعات څه رنګ چه د هغهٔ ماما فریدون هغهٔ ته وئیلی وو پوره نهٔ شول - د پنجاب خلقو څرګ اونهٔ کړو - په دے خبره د مرزا حکیم امید ونه مراوی شول - بل طرفته چه اکبر د مرزا حکیم د فوځ کشئ نه خبر شو نو هغهٔ ته دا حمله د بنګال و بهار د بغاوت نه زیاته خطرناکه معلومه شوه - اګرچه په بنګال و بهار کښے بغاوت په زور و شور جاری وو - او باغیان ګټندویه وو - او د اکبر د پاره حالات ناموافق وو - لیکن هغهٔ ته د خطرے اصلی ځائے معلوم وو - ځکه هغه د خپلوا میرانو د مخالفت باوجود د یو لوئے فوځ سره د مرزا حکیم د مقابلے په نیت د پنجاب په لور راروان شو - او مرزا حکیم چه د اکبر د راتلو نه خبر شو نو داسے ویرے واخست چه د هندوستان د شهنشاهئ خیال ئے شا ته اوغورزولو - او چپل خان ئے نیغ کابل ته اورسولو - په دے موقع اکبر د ډیرے دور اندیشئ نه کار واخست - چه د مرزا حکیم مقابلے ته ئے د بنګال په وخت ترجیح ورکړو - هغهٔ ته دا معلومه وه چه د کابل د لوری نه د یوے کامیابے حملے په نتیجه کښے د دهلی بلکه د ټول سلطنت سقوط ممکن کیدے شی - او د دے په نتیجه کښے د بهار و بنګال بغاوت هم کامیابیدے شی - ولے د حکیم د حملے د ناکام کولو په صورت کښے هغهٔ ته د نورو بغاوتونو د ختمولو موقع او فرصت په لاس ورتلے شی - چنانچه هغهٔ هم دغه شان اوکړل - او نه صرف د حکیم خطره ئے په مستقل ډول لرے کړه - بلکه د خپل سلطنت په استحکام او حفاظت کښے هم کامیاب شو -

اکبر په فروری سنهٔ ۱۵۸۱ء کښے د مرزا حکیم د قطعی فیصلے په غرض د فتح پور سیکری نه راروان شو - او دجون په میاشت کښے دا باسیند غاړے ته راورسید - مرزا حکیم اګر چه کابل ته تلے وو لیکن داخل د اکبر دا خیال وو - چه د مرزا حکیم په زړه کښے داسے ویره کښینولے پکار دی چه هغه بیا په خپل ژوند کښے په هندوستان باندے د حملے اسره او نهٔ کړی - اکبر د اټک په مقام اتال شو - ځکه چه داوری د بارانونو په وجه په سیند باندے پول تړل ګران وو - اکبر د لے پنځوس ورځے پاتے شو - او بیا سره د خپلو فوځونو په کشتیو کښے پورے وتو - په دے موقع اکبر د اټک په مقام د قلا د تعمیر حکم اوکړو - او د تعمیر کارے خپل یو مشهور امیر بیربل ته حواله کړو - او د دے غرض د پاره ئے کافی فوځ هم پرے منود - د دے ځائے نه اکبر مان سنګه په پیښور باندے د قبضے په غرض وړاندے اولیږلو - او په خپله په هغهٔ پسے روان شو - مرزا حکیم د اکبر مقابلے ته خوځ نهٔ وو نیولے - لیکن کابل ته د تلو په وخت کښے

ئے خپله ډوله عصه په پېښور او ښکلې وه - او دا ښارئے سوزولے وو - اکبر چه پېښور ته رااورسید نو هغه دلے ایسار شو . او مان سنګه او خپل ځوئے شهزاده مراد ئے دخیبر په لار کابل ته اولیږلو

په دے موقع اکبر په دره خیبر کښے د سړک جوړولو حکم هم اوکړو - او دا کار هغهٔ خپل انجنیړ قاسم خان ته حواله کړو - او دا اول موقع وه چه دخیبر په دره کښے یو داسے سړک جوړ شو چه په هغ باندے بهګاډی او ګاډے په اسانه تلے راتلے شوے - د دے نه وړاندے دخیبر لاره د اوښانو اسونو د عبورو مرور د پاره هم ګرانه وه - اکبر د قاسم خان نه په دے کاردومره خوشحاله شو چه څه موده پس ئے هغه د کابل ګورنړ او ټاکلو - په کوم سهولت چه په دے دره کښے داکبر انجنیړ قاسم خان دا سړک تعمیر کړے وو - او په کومے اسانئ چه د اکبر فوځونه په دے دره تیر شوی وو . دے واقعاتو د اکبر د دماغ نه د هغه مشکلا تو هیڅ احساس اوو یستلو کوم چه وروستو هغهٔ ته او یا د هغهٔ جانشینو ته د دے د عبور و مرور په وخت کښے د دے درے د استوګنو دلاسه ورپیښ شول .

د شهزاده مراد فوځونه چه کابل ته نزدے شول او د شتر باغ په دره ورننو تل نو دلته د فریدون فوځونه دهغ مقابلے ته ولاړ وو . دفریدون فوځونو د مراد فوځونه راګیر کړل . او مال واسباب ئے ترینه لوټ کړو . ولے سمد ستی ورله د مان سنګه فوځونه رااورسیدل - او د فریدون فوځونو تیښته اوکړه - د فریدون د تیښتے سره سم مرزا حکیم هم د کابل نه او تښتیدلو - او دره غور بند ته لاړ - مان سنګه او شهزاده مراد په کابل قبضه اوکړه - په دوی پسے په اګست ۱۵۸۱ء کښے اکبر هم کابل ته اورسید - اکبر خپل تصور ترسره کړو - په مرزا حکیم ئے خپله ویره کښینوله - چونکه د ژمی موسم راتلونکے وو - نو اکبر دا غوره اوګنړله چه د ژمی د یخنئ نه وړاندے وړاندے خپل فوځونه د کابل نه او باسی - په دے وجه هغه په کابل ایله اووهٔ ورځے ایسار شو . د کابل حکومت ئے د مرزا حکیم خور فخرالنساء ته ورکړو . او دحکیم په حقله ئے دا سخته تنبیهه پرے ښودله چه که چرے هغهٔ بیا څه لاس پښے اوخوزولې نو د هغهٔ سره به سخت سلوک اوکړے شی - د دے نه پس اکبر د کابل نه د دهلی په نیت راروان شو .

داکبر د تلو نه پس د مرزا حکیم خور هغه په چپه خُله رااوغوښت او د کابل حکومت ئے هغهٔ ته اوسپارلو - مرزا حکیم حد په صورته شرابي وو - او د شراب نوشئ د زیاتوالی په وجه په ځلمی توب کښے د مړو نه بدتر وو - داکبر دلوری نه د مرزا حکیم په باب کښے د داسے نرم سلوک یو وجه شاید چه دا هم وی چه اکبر ته دا توقع پیدا شوی وی چه د

هغه جسماني طاقت به تر ډيرے موده د دے دشمن (شرابو) مقابله او نۀ کړے شي نو ځکه به ئے په هغۀ خپل ځان نۀ وی بدنام کړے - به هرحال د دے فراخدلئ وجوهات که د رحم جذبه وه او که څه سياسي ضرورت - مرزا حکيم د اکبر د تلو نه ځلور کاله پس وفات شو - (سنه ۱۵۸۵ء) - او د اکبر د زړۀ نه دخپل تخت د يو ميراث خور د دعوے نُول لرے شو - او هغۀ ته دا موقع په لاس ورغله چه د خپل خواهش مطابق دکابل او دسرحدي پښتو علاقه د خپل سلطنت سره اوګنډی - دکابل صوبه هسے په نوم خو د مرزا کامران د وخت نه د سلطنت دهلي يو ماتحت صوبه وه - ولے عملاً د پنځوسو کالو نه ئے د يو آزاد او خود مختار حيثيت اختيار کړے وو -

د کابل نه اکبر بيا هم په خيبر راتير شو - دا ځل هغۀ په اباسيند باندے دکشتيو په هغه پُل پورے وتلو کوم چه د هغۀ انجنيئر قاسم خان د وړاندے نه تيار کړے وو - اکبر د اټک په مقام د هغه قلا د تعمير جاج هم واخستلو - چه څو مياشتے اګاهو د هغې د تعمير آغاز شوے وو - اکبر لا په اټک کښے وو - چه هغۀ ته د يوسف زو د لاسه د بايزيد دکورنئ سره د ظلمونو او ناکړدو په باب کښے د دادخواهئ خواست اوشو - او هم دغه موقع وه چه د بايزيد پنځم ځوئے جلال الدين د اکبر په حکم د يوسف زو د بند نه خلاص کړے شو -

دا واقعات د سنه ۱۵۸۱ء دی - په دے بنا بايزيد به يقيناً د سنه ۹۸۹ / ۱۵۸۱ نه وړاندے وفات شوے وی - او په اکثرو احتمالاتو د دۀ وفات به په کال سنه ۹۸۷ھ / ۱۵۷۹-۸۰ کښے واقع شوے وی - د دے واقعاتو په رڼا کښے د بايزيد کوم تاريخ وفات (سنه ۹۹۳ / ۱۵۸۵) چه په صراط التوحيد کښے ورکړے شوے دے هغه درست نۀ معلوميږی -

د مرزا حکيم د وفات نه پس د هغۀ ماما فريدون او د حکيم ځامنو په کابل کښے شورو شر پورته کړو - او اکبر چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغۀ سمدستی خپل جرنيل مانسنګه دکابل د قبضے په غرض د يو لوئے فوځ سره کابل ته اوليږلو - او په خپله هم په هغۀ پسے راروان شو - او په کال سنه ۱۵۸۶ء کښے اټک ته راغے - دغه وخت د اټک د قلا عمارت چه ئے په کال سنه ۱۵۸۱ء کښے شوے وو - تکميل ته نزدے وو - (دا قلا د خواجه شمس الدين په نګرانئ کښے مکمله شوی ده -)

په کوم اسانئ چه په کال سنه ۱۵۸۱ء کښے د اکبر فوځونه د مرزا حکيم په تعاقب کښے په دره خيبر تير شوی وو - او په کوم سهولت چه د هغۀ انجنيئر قاسم خان په دے دره کښے د سړک تعمير او توسيع کړے وه - او په دے دوران کښے د پښتنو دلوری نه په دوی څه

قابل ذکر بلوسه نهٔ وه شوی - دے واقعاتو د اکبر په زړهٔ کښے دا تلوسه پیدا کړه چه د پښتنو دا سرتیزه قبائیل چه د اباسیند نه په قبله آباد دی - او تر اوسه پورے ئے نهٔ خو د مغلو یو حکمران ته او نهٔ د دوی نه وړاندے د بل کوم حکمران اقتدار ته غاړه ایښی وه- په خپل اقتدار کښے راولی - دا هم امکان لری چه د یوسف زو او د بایزید د مرستیالو پښتنو کورنۍ مخالفت او دشمنۍ به د اکبر په زړهٔ کښے د پښتنو د تسخیر جذبه تیزه کړی وی - د شیخ عمر او یوسف زو د جنګونو نه اکبر په خپله هم خبر وو - او ددے نه علاوه د اکبر مقامی حاکمانو هم هغهٔ ته دا وئیلی وو - چه په پښتنو قبائیلو کښے د یوسف زو ، مندړو قبیله د ټولو نه لویه او زیاته سرکښه ده - اوکه چرے دا قبیله ایل شی نو نور پښتانهٔ قبائیل به څه قابلِ ذکر مقابلے ته تیار نهٔ شی - دغه وجوهات وو چه د اکبر په زړهٔ کښے ئے د پښتنو قبائیلو د تسخیر اراده مضبوطه کړه -

به هرحال اکبر په اټک کښے قیام اوکړو - او مان سنګه د کابل په نیت روان شو - د وړاندے په شان په خیبر تیر شو - او کابل ته اورسید - د مرزا حکیم ماما فریدون او د حکیم ځامن کیقباد او افراسیاب ئے گرفتار کړل - بیائے په کابل کښے خپل ځوئے سنګیت سنګه پرے منبود. او په خپله د حکیم ماما او ځامنو سره د اکبر په خدمت کښے اټک ته راغے - فریدون تر څه وخته نظر بند اوساتلے شو - او بیا مکے ته اولیږلے شو - او د حکیم ځامن اکبر په خپلے نګرانۍ کښے اوساتل -

چه اکبر د کابل د کشالے نه زړهٔ جمع شو نو هغه په یو وخت کښے د کشمیر او پښتنو قبائیلو د مهماتو په تابیا کښے لګیا شو - د کشمیر په مهم هغه قاسم خان او بهګوان داس اولیږل. دغه وخت د کشمیر حکمران سلطان یوسف خان وو - چه په آسانه ئے د اکبر اطاعت او منلو - ولے د پښتنو په مهماتو کښے اکبر ته ډیر مشکلات پیښ شول - او مغل فوځونو د پښتنو د لاسه ذلیل شکستونه اوموندل - اکبر په خپل خیال کښے د قبائیلی پښتنو تسخیر د خُلے نړئ ګڼلی وه - د هغهٔ په اندازه کښے د پښتنو بے سروسامانه ډګوډی لښکر د مغل اعظم د سازوسامان نه اراسته فوځونو مقابلے ته نهٔ شو ټینګیدلے - لیکن دا د هغهٔ د پښتنو د قامی روایاتو او خصوصیاتو نه دے خبرئ نتیجه وه - او ډیر زر واقعاتو د هغهٔ دا غلط فهمی لرے کړه -

د پیښور په پښتنو قبائیلو کښے د یوسف زو قبیله د خپل کثرت په وجه ډیره طاقتوره او په دے وجه ډیره سرکښه وه - او اکثر به په بین القبائیلی جنګونو کښے په نورو قبائیلو غالبه وه - دغه وجه وه چه د پیښور د څواوشا نور قبائیل د یوسف زو مخالف وو -

د یوسف زو د مهم د آغاز نه اول د اټک په مقام د غوریه خیلو او نورو پښتنو مشرانو یوه جرګه د اکبر په خدمت کښې حاضره شوه ۔ او دغهٔ ته ئے خواست اوکړو چه " یوسف زی " په شاهي سړک تاختونه کوی ۔ او قافلے او کاروانونه لوټي ۔ مګر دا الزام په ټولو پښتنو تپلے شی پکار ده چه د شاهي سړک د حفاظت انتظام اوشي او د یوسف زو د حملو او ډاکو بندیز اوشي"۔ په دے ورځو کښے به د اټک او پیښور ترمینځه اکثر قافلے لوټلے شوے ۔ دا قافلے به یقیناً یوا ځے یوسف زو نهٔ لوټلے ۔ بلکه غوریه خیلو او خټکو به هم په دے کښے څه کے نهٔ کولو۔ لیکن د اکبر په مخکښے د دے الزام په یوسف زو باندے تپلو کښے د دے جرګے دوه غرضه وو۔ یعني یو خو دوی په دے طریقه اکبر په یوسف زو باندے حملے ته پاروُلو ۔ او بل دا چه اکبر د یوسف زو په جنګونو کښے بوخت شي ۔ نو دوی ته به هم دا موقع په لاس ورشي چه اکبر سره پنجه واچوی ۔

د شاهي سړک د حفاظت په غرض اکبر د خپلو مقامي افسرانو او د خوااوشا علاقے د زمیندارانو سره جرګه اوکړه ۔ او د دوی په صلاح او سفارش دا ذمه واری "ملک اکوړی" ته ور په غاړه شوه چه د خټکو د قبیلے د یوے څانګے ملک وو ۔ او دا اول موقع ده چه د پښتنو په تاریخ کښے د خټکو قبیله په دے خپل نوم ذکر شوی ده ۔ ملک اکوړے د خټکو په قبیله کښے د بټي خیلو د څانګے ملک وو ۔ د پلار نامه ئے درویش محمد وه ۔ چه په چینجو هم مشهور دے ۔ د ملک اکوړی نوره قبیله په کربوغه (کوهاټ) کښے میشته وه ۔ ولے ملک اکوړے په څه خبره د خپلو عزیزانو نه مرور شوے وو ۔ او د خوړے علاقے ته راغلے وو۔ په دے ورځو کښے د خوړے په علاقه کښے ماندوری او ډنګرزی اوسیدل ۔ ملک اکوړی په ګواز دره میشته اختیار کړی وه ۔ او د خپل ځان سره ئے یو ټولے جمع کړے وو ۔ او د خوا اوشا په علاقو به ئے تاختونه کول ۔ په دے ډول ئے نوم او شهرت حاصل کړے وو ۔ دغه وجه وه چه کوم وخت د شاهي سړک د حفاظت سوال پیښ شو نو د علاقے زمیندارانو د ملک اکوړی نوم پیش کړو ۔

په کومو ورځو (سنه ۱۵۸۶ء) کښے چه د اکبر د لوری نه د شاهي سړک ذمه واری "ملک اکوړی" ته سپارلے شوه ۔ په دغه ورځو کښے د ملک اکوړی ټوله قبیله په دے خپله علاقه کښے میشته وه د اخون درویزه د تذکرے نه هم د دے قیاس مرسته کیږی ۔ یعني په کومو ورځو کښے چه یوسف زی مندړ په سوات او سمه کښے او غوریه خیل ګګیاني د پیښور په خوااوشا کښے استوګن وو ۔ دغه ورځو کښے خټک هم په دغه خپله علاقه کښے استوګن وو ۔ او که چرے داسے نهٔ وے

نو اکبر به د شاهي سړک د حفاظت لويه ذمه واري يو داسې سړي ته ولې سپارله چه هغه به د قام قبيلې او ټبر خاوند نه وو. او د ټولې علاقې د کوز پاس نه به خبردار نه وو.

ملک اکوړے د جوګيانو او سادوګانو هم سخت دښمن وو. او دومره جوګيان او سادوګان ئې وژلي وو. چه د هغوی د يو يو غوږ نه ئې يو لوئے مټ ډک کړے وو. د ملک اکوړي په باب کښې دا خبره دومره مشهوره وه چه د "تاريخ مرصع" مطابق کوم وخت چه هغه د اکبر په خدمت کښې پيش شو نو اکبر په خپله د هغهٔ نه د دے خبرے پوښتنه اوکړه. او ملک ورته اووے. "او صاحبه" هر جوګی چه به مے وژلو نو اول به مے ورله د اسلام دعوت ورکړو. او چه اسلام به ئې قبول نه کړونو او بهٔ مے وژلو او د ياد داشت د پاره به مے د هغهٔ د غوږ يو والی په مټ کښې واچوله. او د هغه نه يو مټ ډک دے."

د شاهي سړک د حفاظت په بدل کښې د اکبر له خوا د خير آباد نه تر نوښار پورے علاقه او دټلوزو او سپين خاک کلی ملک اکوړي ته په جاګير کښې ورکړے شول. او د دے جاګير نه علاوه په شاهي سړک د محصول وصولولو حق هم ورکړے شو. او د غه شان په اول وار د خټکو د خانئ بنياد کيښودے شو. ملک اکوړے يو هوښيار او مدبر سړے وو. هغهٔ په دے لويه ذمه وارئ کښې د خپلې قبيلې خلق د ځان سره ملګری کړل. او د خپلو فرائضو د سرانجام کولو په غرض ئې د لنډۍ سيند په سوېلي غاړه مصري بانډے ته ځاځ يو کلے هم آباد کړو. چه د هغهٔ په نامه تراوسه "سرائے اکوړه" مشهور دے. او په هغه زمانه کښې به ورله "ملک پور" هم وئيلے شول. د يوسف زو او خټکو ترمينځه د مخالفت آغاز هم د دغ وخت نه اوشو.

چه اکبر د شاهي سړک د حفاظت تابيا اوکړه. نو د يوسف زو د تسخير آغاز ئې اوکړو. په دے مهم کښې هغهٔ خپل يو مشهور جرنيل زين خان اوليږلو. زين خان څو په اوله کښې په کاميابئ سره تر باجوړه اورسيد. ولې بيا چه په سوات ورننوتو نو مشکلات ورته پيښ شول. او د اکبر نه ئې فوځی امداد اوغوښتلو. د زين خان د امداد د پاره دوه فوځونه د دوؤ جرنيلانو "بيربل" او "حکيم ابوالفتح" په کمان کښې اوليږلے شول. دا دواړه داسې جرنيلان وو. چه د جنګ ميدان ئې چرته نهٔ وو ليدلے. او دا په دے خبره دلالت کوی. چه اکبر فوځی طاقت ته ډير کم اهميت ورکړے وو. د بيربل فوځ څو هڅو د يوسف زو په غرونو کښې د تيريدو جوګه ثابت نهٔ شو نو د اکبر په حکم دواړه فوځونه يو ځائے شول. د دے مشترک فوځ په کوشش زين خان ته دا موقع حاصله شوه چه هغهٔ په چکدره

کښې خپل کیمپ قائم کړو- او د ملاکنډ دره ئې هم قابو کړه- او د بیربل او ابوالفتح فوځونو ته ئې د ملاکنډ په دره د تیریدلو موقع پیدا کړه- او درې واړه فوځونه په چکدره کښې یو ځائې شول- د ملاکنډ تورو ګړنګو غرونو بیربل ډیر ویرولے وو- ولے په چکدره کښې هغۀ بیا امزرے شو- او د اول نه ئې په دے خبره خرخ پیدا کړو- چه د صلاح مصلحت د پاره درے واړه جرنیلان د بیربل په خیمه کښې جمع شي- بیربل په خپل زړه کښې خپل ځان د نورو نه زیات ګڼلو- زین خان د زمرو داګوتې هم تیر کړو- او د بیربل خپسے ته لاړ- او هلته د آئنده پروګرام په مقله بحث شروع شو- د زین خان دا تجویز وو چه هغه به د خپل فوځ سره د حفاظت په غرض په چکدره کښې پاتے شي- او نوے فوځ او نوی جرنیلان دِ وړاندے لاړ شي- او د کړاکړ په دره دِ بونیر ته اوځي- او هلته دِ کیمپ اولګوی- او د غه حفاظتي فوځ به وروستو د هغوی سره یو ځائے شي- او که چرے دوی پیش قدمۍ ته غاړه نۀ ایږدی نو دوی دِ په چکدره کښې پاتے شي او زین خان به د خپل فوځ سره پیش قدمي اوکړی- په جنګي نقطه نګاه سره د زین خان دا تجویز معقول وو- ولے بیربل او ابوالفتح خو د خبرو میړني وو- هغوی د جنګي چالونو او طریقو نه څه خبر وو- تردے وخته چه کوم واقعات شوی وو- بیربل په هغې دومره ویریدلے وو- او په خپلو راتلو داسے ستوما نه شوے وو- چه د هغۀ لویه ارزو داوه چه په هر څه طریقه چه وی ډیر زر د دے تورو غرونو نه ځان میدان ته اوباسي- او داکبر خوا ته بیا اورسی- د غه وجه ده چه بیربل او ابوالفتح دواړو د زین خان د دے معقول تجویز مخالفت اوکړو- او زین خان ئې د دے خبرے ته مجبور کړو- چه هغه د دوی د خودکشي دے ارادے سره متفق شي-

فیصله په دے اوشوه چه درے واړه فوځونه به یو ځائے روانیږی- بیربل به د ډیر هیبت نه د وړاندے فوځ کمان واخست- ابوالفتح په مینځ کښې شو او زین خان په وروستي فوځ کښې- د کړاکړ تر درے خو دوی په خیریت اورسیدل- ولے چه د کړاکړ په دره ورننوتل- نو پښتنو پرے تورے نورے جوړے کړے- ټوله ورځ پښتنو په مغل فوځ د زړۀ ارمانونه اوویستل او په ډیر بد حال مغل فوځ میداني علاقے ته ور ښکته شو- د د ترسک ۰ سره نزدو درے واړه جرنیلان بیا د جرګے په غرض یو ځائے شول- دلته هم زین خان د کیمپ لګولو او د حفاظت په غرض د خندقونو تجویز پیش کړو- هغۀ دااووے چه څو ورځے ایسار ریدل او د فوځ تنظیم پکار دے- او که موږ څو ورځے ایسار او حفاظتي تدابیر اختیار کړو نو د پښتنو لښکر به په خپله خورشي- ځکه چه د پښتنو قبائیلي لښکر سره نه خو د ډیرو ورځو د پاره

دخوراک سامان وی او نهٔ دجنګ - د زین خان دا تجویز هم ډیر معقول وو - او که چرې په
دې عمل شوې وې نو ممکنه ده چه مغل فوځ د راتلونکی تباهیٔ نه بچ شوې وې - لیکن بیربل
دلته هم پینې او حروله - او د زین خان تول معقول تجویزونه ئې رد کړل - دا ځل هم بیربل
وړاندې روان شو - او زین خان وروستو -

د بیربل فوځ چه د ډګر په سویل کړپ ته اورسید - نو د هغهٔ لیاره لمدې شوې -
او دا خیال ئې اوکړو چه منزل مقصود ( د سمې علاقه ) نژدو دې - ولې ډیر زر د هغهٔ په
امیدونو بچ او بهٔ توئې شوې - د ملندرئ پورې یوه سخته او تنګه کسئ لا د دوئ وړاندې
وه - او په دې ټوله لار د غرونو په څوکو ، زوړونو او ایځونو کښې پښتانهٔ د دوئ " هرکلی "
ته ولاړ وو - د پښتنو په لیدو د بیربل او ابوالفتح د فوځونو وار نور هم خطا شو - او چه
کوم وخت پښتنو په دوئ د کاڼو او غشو باران اوورولو نو د مغل فوځ تنظیم او ترتیب
بلکل وران شو - په دوئ دا سې ویره غالبه شوه چه هر سپاهی به د بل نه وړاندې کیدلو
کوشش کولو - دوار خطایئ په دې منډو ترړو کښې ټوله لار د مغلو د مړو نه ډکه شوه -
څوک د اسونو او هاتیانو په پښو کښې دل شول - او څوک په کندو کښې او غورزیدل - دیو
بل نه د وړاندې کیدو په کوشش کښې اسونه هاتیان او بنیادم ټول ډم ډیرې شول -
او بیربل هم په دې ډیری کښې غیب شو - ابوالفتح د ویرې نه په یو جاړه کښې پټ شوې
وو - او چه د زین خان فوځ را اورسید نو د هغهٔ په غړو کښې هم ساه راغله - د زین خان
په رارسیدو مغل فوځ بیا څه نیمګوړې راغونډ شو - ولې پښتانهٔ هم وردپسې سم لګیدلی
وو - ټوله ورځ مغل فوځ د پښتنو د لاسه اوزبلې شو - او په ډیرو خوارو تر ملندرئ
را اورسید - د شپې بیا په مغل فوځ کښې د پښتنو د حملې ګنګوسه خوره شوه - او دوئ بیا
داسې وار خطا شول - چه د ځان د حفاظت په غرض چرته ئې په کومه مخه به سمې راتلو په
هغه مخه به تښتیدل - د شپې تیرې او د لارو ګودرو نه ناواقفئ د مغل فوځ په تباهئ
کښې نوره اضافه هم اوکړه - ابوالفتح او زین خان هم په ډیر بد حال کښې اوتښتیدل - او
د مغلو دا عظیم فوځ د ملندرئ په کندوکو دروکښې تالا ترغا شو - د " بدایونی " مطابق
اتهٔ زره مغل فوځ په دې موقع قتل شو - د اکبر نادیات جرنیل بیربل هم په مقتولینو کښې
شامل وو - او د بیربل نه علاوه د خواجه عرب بخشی ، ملا شیرین او حسن خان بتنی ( چه د
زین خان د فوځ یو څوا نمرد ( افسر وو ) هم وژلی شوی وو - د دې واقع نه درې ورځې پس
زین خان او ابوالفتح په بد حال اټک ته اورسیدل او اکبر ته ئې د دې غمناکې واقع خبر ورکړو -

اکبر د بیربل په مرګ ډیر خفګان ښکاره کړو. هغه زیات په دې خبره خفه وو چه زین خان او ابوالفتح د بیربل د لاش په راوړلو کښې ولې کامیاب نهٔ شول. چه د هغهٔ لاش د هندو مذهب د رسوماتو مطابق سوزولې شوې وې. د دې جرم په سزا کښې اکبر د زین خان او ابوالفتح سره د ملاقات نه انکار اوکړو. او دوه ورځې ئې د حاضرئ نه محروم کړل. او شاید چه نورې هم محروم کړې وې ولې په دریمه ورځ په اټک باندې د یوسف زو د حملې ګنګوسه خوره شوه. نو د اکبر سره هم ویره پیدا شوه ځکه هغهٔ د حفاظت او ائنده اقداماتو د تجاویزاو مشورو په غرض دوئ ته د حاضرئ اجازت ورکړو.

د دې نه پس زین خان یو ځل بیا د شهزاده مراد او بهګوان داس په مکرتیا کښې د یوسف زو په مهم مقرر شو. او په میدانی علاقو کښې ئې تر څه حده کامیابي هم حاصله کړه. لیکن په میدانی علاقو کښې د یوسف زو د پاره د مغلو د بې شماره فوځونو مقابله کول ډیر ګران وو. ولې تر کومه حده چه د غرنیزو علاقو تعلق دې. مغل حکومت د خپل عظیم طاقت باوجود د پښتنو په یوه ټوټه مزکه هم خپل اقتدار قائم نهٔ کړې شو. او د دې علاقې په تسخیر کښې د دوئ ټول کوششونه ناکامیابه وو. سوات، بونیر، باجوړ او تقریبًا هغه ټوله علاقه چه نن ورځ په ملاکند ایجنسۍ کښې شامله ده. د مغلو د برائې نام اقتدار نه هم خالي وه. اګر چه د مغل حکومت درباری مؤرخینو دغه ټولې علاقې په خپلو تاریخونو کښې د مغل حکومت زیر اقتدار ذکر کړی دی. ولې د دې وجه صرف دا ده چه قلم د مدعی په لاس کښې و. په دې لړ کښې د ښاغلی "راورټي" دا وینا بدکل حق بجانب معلومیږی چه د مغل حکومت او د پښتنو په علاقو د اقتدار په باب کښې د "آئین اکبری" یو جلد هم مکمل او رښتونې نهٔ شی ګڼلې.

اکبر یوائې دا نه چه د یوسف زو په مهم کښې کامیاب نهٔ شو. بلکه هغه په دغه وخت کښې د خیبر د پښتنو د لاسه هم او ترټید و. ښاغلی لوستونکو ته به یاد وی چه په ۱۵۸۱ء کښې د څوارلسو کالو یوې مخ ملک د اکبر په حکم د یوسف زو د بند نه ازاد شوې او اکبر په خپل دربار کښې ساتلې وو. دا ملک د بایزید پښتم او کشر ځوئې جلال الدین وو. چه ډیر زر د اکبر د دربار نه په تیښته کښې کامیاب شوې او تیراه ته تلې وو. جلال الدین که په عمر کچه وو. ولې د بایزید ځوئې وو. او د خپل پلار دماغ او زړورتیا ئې په میراث کښې موندلې وه. هغه ډیر زر د پښتنو قبائیلی تنظیم شروع کړو. او چه خپل طاقت ئې مضبوط کړو نو د پښتنو د بادشاهۍ اعلان ئې اوکړو.

په کال سنه ۱۵۸۶ کښې چه مان سنګه د مرزا حکیم د مرګ او د هغهٔ د ځامنو د فساد رفع
کولو نه پس دوباره کابل ته روان شو نو دغه وخت د جلال الدین په مشرۍ کښې قبائلي
پښتنو د خیبر لاره بنده کړې وه - ولې د مان سنګه د عبور په وخت کښې دوئ په هغهٔ څه بلوسه
او نهٔ کړه - لیکن چه مان سنګه کابل ته اورسید نو دوئ په پېښور حمله اوکړه - ښارئې لوټ
کړو - او د دې ځائې مغل حاکم سید حاکم ئې اووژلو - په دې حمله کښې د افریدو اورکزو
نه علاوه خلیل، مهمند هم شامل وو - دغه وخت اکبر ته د یو نوې خطرې احساس اوشو -
مان سنګه هم د دې واقعاتو نه خبر شو - هغهٔ ته دا خبره معلومه وه چه اګرچه د فساد
مرکز افریدی دی - ولې د پېښور د خواوشا خلیل مهمند د دوئ مرستیال دی - په دې
بنا فیصله داسې اوشوه - چه مان سنګه به د کابل د لورې نه د افریدو غوږونه تاوکړی -
او یو بل فوځ به د اټک نه پېښور ته لاړ شي - او غوریاخیل به په خود کړی او بیا به دواړه
فوځونه په خیبر کښې یو ځائې شي -

د پروګرام مطابق مان سنګه د کابل نه راروان شو - ولې د ننګرهار په علاقه کښې د
" پیش بولک " په علاقه کښې ناجوړه شو - او په حمله کښې تاخیر راغے - غوریه خیل چه
د سید حامد د کشالے نه دغه وخت اوزګار شوی وو - نو خیبر ته ئې مخه اوکړه - ځائې
په ځائې ئې خندقونه اوکښتل، مورچې ئې قائمې کړې - او د شاهي فوځ په لار کښې ئې د هر
بندیز بند و بست اوکړو - او تولهٔ دره ئې د عبور مرور د پاره بنده کړه - مان سنګه هم د
دې واقعاتو نه خبر وو - او چه د ناجوړتیا نه روغ شو - نو د بازار په لارئې په تیراه حمله
اوکړه - او څه لږ ډېره کامیابي ئې حاصله کړه - ولې علي مسجد ته په ډېرې خوارئ را
اووتلو - او دومره زېلے شوے وو چه د پېښور په لور د پیش قدمۍ قابل نهٔ وو - چنانچه
د مان سنګه د راایستلو د پاره د پېښور نه یو بل فوځ لاړ - او د دې دواړو فوځونو په
وجه هغه د دې جوګه شو چه پېښور ته راورسید - بیا هم د مغل فوځ بے اندازې
نقصان شوے وو - د دې نه پس د جلال الدین لښکر خور شو -

د اکبر دا مهم بیخي ناکامیابه وو - د شدید نقصانونو باوجود نهٔ خو د خیبر لاره د
شاهي فوځونو د عبور و مرور د پاره آزاده او محفوظه شوه - او نهٔ د دې سرکښه پښتنو
د اکبر اطاعت اومنلو - ولې د یوسف زو او افریدو په مهماتو کښې د ناکامیابیدو باوجود
اکبر د پښتنو د ایل کولو اراده پرې نښوه - او څهٔ رنګ چه هغهٔ د یوسف زو په مهم
دوباره زین خان مقرر کړے وو - دغه رنګ ئې د افریدو په مهم یو بل افسر مطلب خان

مقرر کړو چه کال ۱۵۸۰ئه کښې مطلب خان د بنګښو په لار په تیراه حمله اوکړه. ولې د نتیجې په لحاظ دا مهم هم کامیاب نهٔ شو. نه جلال الدین ګرفتار شو. او نهٔ تیراه فتحه شو.

په کال ۱۵۸۸ئه کښې د مان سنګه په ځائے زین خان د کابل ګورنر مقرر شو. د زین خان په وخت کښې هم د پښتنو سره جنګونه جاری وو. ولې د پښتنو د اطاعت مقصد حاصل نهٔ شو. اګر چه د ۱۵۸۷ئه نه تر ۱۵۹۳ئه پوره پنځه کاله د اکبر جرنیلان اوګورنران د سوات، بونیر، باجوړ او تیراه په جنګونو کښې لګیا وو. ولې په دے علاقو کښې په یوه علاقه هم د مغلو اقتدار قائم نهٔ شو. په دے پنځه کاله کښې درے ځله د جلال الدین د نیولو په غرض فوځونه اولیږلے شول. ولې هر ځل دا مهم شنډ اوختلو.

په کال ۱۵۹۲ئه کښې د جلال الدین د ګرفتارئ په غرض یو عظیم فوځ اولیږلے شو. وئیلے شی چه د دے فوځ په لاس د جلال الدین ځوارلس زره ملګری بندیوان شول. چه د "جلاله" ځامن، لونړه او سنځه پکښې هم شامله وه. بیا هم جلاله د دوئ په لاس رانغلو. او نهٔ دے شدید نقصان د هغهٔ په ارادو کښې څه تزلزل پیدا کړو. بلکه د وړاندے نه ئے په زیات جوش د مغلو مقابله شروع کړه. په کال ۱۵۹۶ئه کښې چه زین خان د کابل دوباره ګورنر مقرر شوے وو. جلال الدین بیا د خلیلو مهمندو د یو لښکر په کومک په غزنی حمله اوکړه. دا ځل زین خان لوئ همت اوکړو او جلال الدین ئے د چنلے علاقے نه په ډیرے خوارئ اوویستلو. په کال ۱۵۹۹ئه کښې جلاله بیا په غزنی حمله اوکړه. دا ځل د هغهٔ په مرسته لوهانی قبائیل هم ولاړ وو. جلاله په غزنی قبضه اوکړه. د غزنی ګورنر شریف خان کابل ته په تیښته ته لاړ. د جلال الدین لښکر ښار لوټ کړو. او د هغهٔ د سړو لاس ته ډیر مال راغلو. په دے موقع د جلاله مقابله د هزاره قام د یو مضبوط ځلے سره راغله. په دے مقابله کښې جلاله په یو اتفاقی ګولئ اولګید. او هغه سړے چه د اکبر اعظم بهترین فوځونه ئے د نیولو نه ناچاره شوی وو. بے سوده مړ شو. او د زین خان په نوم دا شاباسے هسے اولیکلے شو.

د جلال الدین په مرګ د روښنائی تحریک د قیادت واګے د احداد لاس ته راغلے دا سړے د شیخ عمر ځوئے او د جلال الدین وراره وو. د ده په وخت کښې هم روښنائی تحریک په زور کښې وو. چه ذکر به ئے په ځپله موقع اوشی. په کال ۱۶۰۱ئه کښې زین خان د کابل د ګورنرئ نه بیرته او غوښتلے شو. او د دے نه څلور کاله پس په کال ۱۰۱۴ھ / ۱۶۰۵ئه کښې اکبر هم وفات شو.

لکه چې اووټلې شول- د اکبر په وخت کښې بلکه د هغهٔ نه پس د هغهٔ جا نشینانو په وخت کښې هم د پښتنو غرنيزې علاقې لکه سوات، باجوړ، تيراه او وزيرستان وغيره د مغل حکومت د اقتدار نه ازادې وې- اګرچه د پيښور او يوسف زو په ميداني علاقې د اکبر اقتدار قائم شوې وو- او د حفاظت او انتظام په غرض د اکبر له خوا د يوسف زو په علاقه کښې وړې وړې قلاګانې هم جوړې شوې وې- داسې يوه قلا په بنډ کښې ده- بله په لنګر کوټ کښې (دا کلې د موجوده طورو ضلع مردان سره نزدې وو او اوس وران شوې دې-) د غه شان يوه قلا د موجوده ګړهي کپوره په خوا کښې وه- ولې په دې علاقو کښې به هم د حکومت معاملات اکثر د فوځ په زوراجرا کيدل- او چرې به چه دې پښتنو موقع موندله نو د حکومت مقابلې ته به ئې پتون تړولو-

د منډړو په علاقه کښې د پښتنو د پرله پسې تاختونو او چپاوُنو يوه نتيجه دا هم او ختله چه د خټکو او يوسف زو ترمينځه دښمنئ او رقابت شدت اختيار کړو- دا دواړه قبيلې تر مودو مودو ديو بل وينو ته تږې ناستې وې- دا حقيقت چه خټک د مغل استعمار په مرسته کښې د يوسف زو برخلاف کلک ولاړ وو- د يوسف په علاقه کښې د لنډي سيند نه په قطب د منډړو په زمکه په يو لوئ علاقې باندې د خټکو د ميشته کيدلو نه ځرګند دې- هم په دې ډول د سوات په پوله د خټکو د ځنې لويو لويو کلو لکه لوند خوړ، جبال ګړهئ او کاټلنګ وغيره موجودګي د دې قياس مرسته کوي چه ملک اکوړې او د هغهٔ اخلاف د مغلو او يوسف زو د مخالفت په دوران کښې د خپلو مفادو په غرض د مغلو په مرسته کښې د يوسف زو سره جنګيد لی دی- د خټکو او يوسف زو د دې دښمنئ عکاسي د خوشحال خان په نظمونو کښې هم ځرګنده ده-

به هر حال د اکبر اعظم د لوری نه چه د پښتنو قبائيلو د تسخير په حقله څومره کوششونه شوی وو- او د دې مقصد په حصول کښې چه څومره ځاني او مالي نقصان برداشت شوې وو- د هغې په مقابله کښې په معمولي ډول هم دا مقصد پوره نهٔ شو- او د هغه پښتنو نه علاوه کوم چه د خپلو مفادو په خاطر د مغلو مرسته اختيار کړی وه نور ټول پښتانهٔ قبائيل خوا که د جنوبي علاقو وو او که د قطبي علاقو د مغل حکومت د اقتدار نه بيخي آزاد وو-

# د جهانګیر په عهد حکومت کښې د

# پښتنو حالت

لکه چه وړاندې وئیلې شوي دي اکبر اعظم په کال سنه ۱۰۱۴ هـ / ۱۶۰۵ء کښې وفات شو. او د هغهٔ په ځائې شهزاده سلیم د نورالدین جهانګیر په نامه تخت نشین شو. د پښتنو په باب کښې د اکبر پالیسي په نفرت او بې اعتمادئ مبني وه. ولې د تخت نشینئ سره سم د پښتنو په حقله جهانګیر د ډیرې فیاضئ او روادارئ پالیسي اختیار کړه. او د دهٔ دا دور د هندي پښتنو د اقتدار او شان و شوکت دوره وه. په دې پالیسئ کښې د جهانګیر د وفات نه پس د شاه جهان په وخت کښې بیا تبدیلي راغله.

د پښتنو په باب کښې د دې تبدیلئ څه وجوهات سیاسي ضروریات وو. او څه د جهانګیر خپله عالي ظرفي او حق پسندي. هغه یواځې د پښتنو په باب کښې خپله (ماضئ) نهٔ وه بدله کړې بلکه د راجپوتو سره ئې هم د فیاضئ پالیسي اختیار کړې وه. د اکبر د سلطنت په اخري کالونو کښې د مغل امیرانو یو مضبوط ډله چه سرکرده ئې خان اعظم عزیز مرزا کوکا وو. او د راجپوتو امیرانو یوه ډله چه مشر ئې راجه مان سنګه وو. په دې کوشش کښې لګیا وو چه د اکبر نه پس د جهانګیر په ځائې د هغهٔ ځوئې شهزاده خسرو تخت نشین کړي اګر چه د دوئ دا سازش کامیاب نهٔ شو. او جهانګیر تخت نشین شو. ولې د دې خبرې په جهانګیر دا اثر اوشو چه د هغهٔ د مغل امیرانو او د پلار د وخت د راجپوتو سردارانو نه ویسا پاسیده. او د دوئ وفاداري د هغهٔ په نظر کښې مشکوکه شوه. او هغه ئې دې خبرې ته اماده کړو چه په خپله مرسته او حمایت د داسې امیرانو او شرفاؤ یوه ډله پیدا کړي چه د هغوي پوره پوره اعتماد او وفاداري دهٔ ته حاصله وي. د دې نه علاوه جهانګیر د خپلې شهزادګئ د زمانې نه د پښتنو د مردانګئ، شجاعت او فوجي خصوصیاتو نه متاثر وو. او د هغهٔ دا خیال وو چه که د دې خلقو د وفادارئ او اعتماد حاصلولو کوشش اوشي نو د

سلطنت په مقاصدو کښې به ډېر مفید ثابت شي. سربېره د دې جهانګیر په شاهانه ماحول او ازاده فضا کښې لوئ شوې او فطرتاً عالي ظرفه وو. نو د هغهٔ دا خواهش وو چه د حریف مغلوب (پښتنو) سره هغه سلوک پکار دې. دکوم سلوک چه دوئ مستحق دی. دغه وجه وه چه د خپلې تخت نشینئ سره سم جهانګیر د پښتنو په باب کښې خپله پالیسي بدله کړه.

لکه چه ویلې شوی دی اکبر به پښتنو ته په درنه سترګه نهٔ کتل. او د دوئ داستحقاق او اهلیت باوجود به ئې دوئ ته د ذمه وارئ او اعلی عهدې نهٔ ورکولې. چنانچه د اکبر د سلطنت په ټولو منصبدارانو کښې صرف دوه کسه پښتنو منصب دارانو د دو هزاري منصب لرلو. او په دې دوو کښې هم یو بازبهادر د مالوې سابق حکمران وو. چه د مرګه پورې د اګرې په قلا کښې نظربند او هسې په نوم دو هزاري منصب دار وو. ولې د جهانګیر په عهد حکومت کښې شپږ ویشت بلکه د دې نه هم څه زیات پښتانهٔ امیران په اعلی منصبونو فائز وو. او اکثر په کښې چار هزاري او پنځ هزاري منصب داران وو. او خان جهان لودي د هفت هزاري او سپه سالارئ منصب لرلو.

جهانګیر به د څه شرط او پابندئ نه بغیر په فراخه لئ سره پښتنو امیرانو ته د ذمه وارئ عهدې ورسپارلې. او اکثر به ئې د مخدوشو او جنګي اهمیت حاملو صوبو ګورنرئ پښتنو ته ورکولې. چنانچه د خپلې تخت نشینئ سره سم هغهٔ په پنجاب کښې دلاؤ خان کاکړ صوبه دار مقرر کړو. په پېښور کښې ئې شېرخان روهیله ګورنر او ټاکلو. دغه شان د ټهټې ګورنر تاج خان نوې یو پښتون وو. مبارک خان سرواني د حصار فوجدار وو. خان جهان لودي په ملتان او دکن کښې ګورنر پاتې شوې وو.

دې امیر په خصوصیت سره په مغل دربار کښې ډېر اوچت مقام حاصل کړې وو. او د جهانګیر په دهٔ داسې اعتماد وو. چه د خان جهان اقتدار ته به د نورجهان د ورور آصف خان غوندې امیران بلکه شهزاده خرم (شاهجهان) غوندې شهزادګان هم بېخیدل. جهانګیر به د پښتنو امیرانو د خدماتو ډېر قدر کولو. او د هغې په اعتراف کښې به ئې د فیاضئ نه کار اخستلو. چنانچه دوئ ته به ئې بیش قیمته انعامونه، خلعتونه او اعلی خطابونه ورکول. او دغه شان به ئې د دوئ عزت افزائي کوله. په بل لور به پښتانهٔ هم د زړهٔ د خلاصه د جهانګیر خدمت ته تیار وو. او په خپلو وینو او خپلو سرونو به ئې د هغهٔ د مقاصدو آبیاري کوله. او په ډېره جانثارئ به ئې د هغهٔ د سلطنت داستحکام

کوشش کولو. په دې لړکښې به دمثال په ډول د یوې واقع ذکرکول موزون وي. چه دهغې نه به دا معلومه شي چه پښتانه امیران د جهانګیر د دې فیاضانه پالیسۍ په وجه د هغهٔ څومره وفادار او جانثار وو.

د خپلې تخت نشینۍ په اغاز کښې جهانګیر دلاورخان کاکړ د پنجاب په ګورنرۍ اوټاکلو. ردد ې امیر اصلي نامه ابراهیم خان ده. ولې د مړانې د یوې کارنامې په ظهور کښې جهانګیر دهٔ له د دلاورخان خطاب ورکړې وو) په ۱۶۰۶ء کښې د جهانګیر ځوی شهزاده خسرو د پلار نه بغاوت اوکړو. او په پنجاب دیو لوئ فوځ سره راا ووتلو. ډیر مغل امیران د هغهٔ د جنډې لاندې جمع شوي وو. دا د جهانګیر د پاره ډیر نازک وخت وو. که چرې دلاورخان د خسرو ملګرتیا کړې وې نو په مغل سلطنت کښې به د باهمي خانه جنګۍ یو نهٔ ختمیدونکی سلسله شروع شوې وه. او سلطنت ته به ترې ډیر نقصان رسیدلې وو. د خسرو د لورې نه په دلاور خان د پټې هم اوشوې او ترغیبونه هم ورکړې شول. د مغل سلطنت قدیمي امیران د جهانګیر نه باغیان شوي وو. د دلاورخان د پاره هم بغاوت اسان وو. ولې هغه د جهانګیر په وفادارۍ کلک ولاړ وو. او کوم اعتماد چه جهانګیر په هغهٔ کړې وو. د هغې ئې خپل ځان پوره پوره اهل ثابت کړو. دلاورخان د خسرو سره په سختۍ مقابله شروع کړه. او جهانګیر ته ئې دا موقع پیدا کړه چه خسرو ته شکست ورکړي او ګرفتار ئې کړي.

دغه دلاورخان وروستو د کشمیر ګورنر شو. او د جهانګیر په هدایت ئې د کشمیر تر لرې لرې غرئیزې علاقې هم فتح کړې. جهانګیر د دهٔ په دې کارنامو دومره خوشحال شو چه د دې صوبې د یو کال ټول آمدن ئې دهٔ له په انعام کښې ورکړو. نوموړې امیر د خپل مرګه (سنه ۱۶۲۰ء) پورې په کشمیر کښې ګورنر وو. جهانګیر په خپل توزک کښې د دهٔ د قابلیت، جانثارۍ او انتظامي اهلیت اعتراف په ډیرو شاندارو الفاظو کښې کړې دې.

غرض د جهانګیر د دې نوې پالیسۍ په رڼا کښې په هندوستان کښې د پښتنو او مغلو تعلقاتو یو نوې شکل اختیار کړو. د دې پالیسۍ د اغاز و نفاذ سره د هندوستانې پښتنو او مغلو ترمینځه هغه فضا ختمه شوه چه د هغې بنیاد د یوبل نه په نفرت، بغض او بې اعتمادۍ ایښودلې شوې او اغازئې د بابر د زمانې نه شوې وو. دغه وخت کښې که په یو لور جهانګیر پښتنو ته په درنه سترګه کتل. په دوئ ئې اعتماد کولو. دوئ ته ئې د ذمه وارۍ اهمې عهدې ورسپارلې. د دوئ د کارنامو ئې په فراخدلۍ قدر کولو. انعامونه

خلعتونه او اوچت اوچت خطابونه ئے ورکړل - نو په بل لور پښتنو هم د دے نوی حالاتو سره هم اهنګی او په خپلو خيالاتو کښے تبديلی پيدا کړه - د حقيقت پسندی نه ئے کار واخست - د ‹‹ پدرم سلطان بود ›› ټپه ئے پرے سپړ دله - او دا ئے غوره کړه چه تيرخو هسے هم تير دی د هغ تلافی اوس ناممکنه ده - ولے ‹‹ حال ›› په لاس کښے دے - او د دے نه فائده اخستل پکار دی - چنانچه دوئ د جهانګير د اعتماد، احسان او قدردانئ جواب په اخلاص و وفادارئ او سرفروشئ سره ورکړو - او د دے نتيجه دا شوه چه د جهانګير په عهد حکومت کښے پښتانه امیران په مغل دربار او د سلطنت په معاملاتو کښے د لوئ اهميت خاوندان وو - ولے ترڅومره چه د شمال مغربي سرحد د پښتنو قبائيلو تعلق وو - دلته کښے د پښتنو ترمينځه هغه جنګونه روان وو کوم چه د اکبر په زمانه کښے شروع شوی وو -

لکه چه وئيلی شوی دی د اکبر د عهد حکومت په اخری کالونو او د جهانګير د تخت نشينئ په اغاز کښے روښنائ تحريک د ‹‹ احداد ›› په رهنمايئ کښے بيا سرپورته کړے وو - او د کابل په صوبه کښے بدامنی وه - د غه وجه وه چه جهانګير په کال ۱۶۰۷ء کښے په خپله کابل ته روان شو - په اټک راپورے شو - او په قلعه نوښار کښے ئے قيام اوکړو - د دے قلا په حقله جهانګير داسے وائی :-

قلعه نوښار[۱] د دريائے کامه (لنډی سيند) په غاړه سرائے باره ته مخامخ اباده وه - په کومو ورځو کښے چه زين خان د کابل ګورنر وو - نو دا قلا هغه د يوسف زو قبائيلو د سرکوبئ په غرض د پنځوس زره روپو په خرڅ اباده کړی وه - دلته به د يوسف زو د علاقے فوجدار اوسيدلو - د دے قلا نوم هغه نوښار ايښے وو - دلے به اکبر بادشاه د خپل قيام په دوران کښے د ړڼګانو او امزرو ښکار کولو "

‹‹ په قلعه نوښار کښے د برشارو (پيښور) جاګير دار احمد بيګ کابلی د يوسف زو او غوريه خيلو د څنے ملکانو سره زما په خدمت کښے حاضر شو[۲] - چونکه په دے علاقه کښے د احمد بيګ د کارګزارئ نه زۀ مطمئن نۀ شوم - نو ما د پيښور انتظام

---

[۱] دا قلا غالباً د لنډی سيند په قطبی غاړه اباده وه - او د موجوده نوښار کلان قصبه به هم د دے په نوم مشهوره شوی دی - توزک جهانګيری - ص ۱۳۳

[۲] دا هغه ملکان وو کوم چه د حکومت وفادار او د جهانګير په خدمت کښے د څه انعام و اکرام په طمع حاضر شوی وو - توزک ص ۳۴

شیرخان افغان ته حواله کړو.[۱]"

د جهانګیر د تخت نشینۍ په وخت د روښنائي تحریک واګې د احداد په لاس کښې وې. د احداد ښځه بي بي علائي نومیده. چه د جلال الدین لور وه. دې میرمن د ظاهری حسن و ښکلا نه علاوه د سیاسی فهم و تدبر نه هم ډیره برخه لرله. او د دې تحریک په چلولو کښې د دې د مشورو هم لوئې دخل وو. په دې ورځو کښې د احداد په مرسته غوریه خیل او د تیراه قبائیل افریدی او بنګښی ولاړ وو. د دې قبائیلو په مرسته به احداد د مغلیه سلطنت په قلا ګانو حملې کولې. په کال سنه ۱۶۰۷ء کښې جهانګیر کابل ته اورسید. په دې ورځو کښې شاه بیګ نومې یو سړې د اکبر د زمانې نه د قندهار د صوبې حاکم وو. او د غزنی علاقه هم د ده په حکومت کښې شامله وه. دا سړې د زړورتیا نه علاوه د یو سازشی ذهن خاوند وو. او د هر قسم پیچیده او مشکل حالاتو د سمولو اهلیت ئې لرلو. د غه وجه وه چه د کابل په صوبه کښې د امن و امان قائمولو د پاره د شاه بیګ نه غوره بل څوک موجود نۀ وو. نو جهانګیر هغۀ ته د "خانِ دوران" خطاب ورکړو. او د کابل صوبې ئې هم د هغۀ په انتظام کښې ورکړه. د غه شان شاه بیګ د قندهار، غزنی او کابل درې واړو صوبو حاکم اعلی مقرر شو. په دې توقع چه شاه بیګ به د پښتنو د معاملاتو ورانه ماشوره سمه کړی جهانګیر هغۀ ته د پښتنو ټولې غرنیزې علاقې لکه سوات باجوړ او تیراه په جاګیر کښې ورکړې. او هغه ئې د پښتنو د معاملاتو کلی اختیار من اوګرځولو.

لکه چه مو وئیلی دی احداد د کابل په صوبه کښې خپلې حملې جاری ساتلی وې. په کال سنه ۱۰۲۸ھ / ۱۱-۱۶۱۰ء کښې هغۀ یو ځل بیا په کابل حمله اوکړه. دا حمله ډیره شدیده او په ډیر سرعت سره شوی وه. په کابل کښې مقیم مغل فوځ د دوئ د لاسه بد شکست اوموندلو. دا حمله په ډیرې خوارئ او تمبولې شوه. او د حمله آورو لاس ته ډیر مال غنیمت راغې. داسې معلومیږی چه د احداد په مقابله کښې د شاه بیګ د تقررئ نه چه د جهانګیر کوم توقعات

---

[۱] شیرخان یو هندوستانی روهیلې پښتون وو. اصلی نامه ئې رکن الدین خان وه. د جهانګیر د شهزادګئ د زمانې په ملازمانو کښې وو. د شیرخان خطاب ورله د شجاعت د یوې کارنامې په انعام کښې جهانګیر ورکړې وو. جهانګیر ده له درې نیم زریز منصب ورکړې وو. او د پېښور د علاقې او د دره خیبر فوجدار ئې مقرر کړې وو. جهانګیر د ده د کارګزارئ نه ډیر خوشحال وو. او داسې وائې چه شیرخان په ډیرې جان نثارئ د دره خیبر حفاظت فرائض ادا کول.

وو هغه نهٔ پوره کیدل ـ ځکه چه شاه بېگ به په خپل وس د روښانیانو د مقابلې نه ځان ژغورولو ـ او په دے خبره جهانگیر هم ډیر فکرمند وو ـ لکه چه د جهانگیر د خپلې وینا نه دا معلومیږی ـ جهانگیر وائې :ـ

« هرکله چه ماته معلومه شوه چه « خان دوران » او د کابل نور اهلکاران صرف وخت تیروی ـ چه دهغ په وجه د « بدفطرته » احداد مونږ ایستل یو ډیره لرے خبره معلومیږی. نو ما دا خیال اوکړو چه په دے مهم خان خانان او د هغهٔ ځامن مقررول بکار دی ـ ما دا فیصله کړی وه چه « قلیچ خان » د پنجاب نه په خدمت کښے حاضرشو ـ چه هغهٔ ته دا خبره معلومه شوه ـ چه د احداد په مهم زما اراده د خان خانان د مقررولو ده ـ نو قلیچ خان د دے مهم د سرکولو خواهش ظاهر کړو ـ چناچه ما هغه (قلیچ خان) د شش هزاری ذات او د پنځه زره سورو په منصب فائزکولو ـ او د احداد د سرټکولو په مهم ے او تاکلو[۱] »

ولے داسے معلومیږی چه قلیچ خان چه په کومو لویو ارادو او نوے تلوسو د احداد د بیخ کنۍ په نیت راغلے وو ـ په هغ کښے هغه بیخی ناکامیاب شو ـ ځکه چه داحداد حیلې په ټوله علاقه کښے جاری وے ـ د جهانگیر د جلوس په لسم کال د خانِ دوران او احداد ترمینځه یو شدید جنگ اوشو ـ چه په هغ کښے طرفینو ته شدید نقصان اورسید. په دے جنگ کښے د جهانگیر د وینا مطابق احداد شکست اوموند ـ او هغه د قندهار په لور لاړ ـ په دے فتح جهانگیر دومره خوشحال شو چه « خان دوران » (شاه بېگ) ته ئے دره لکه روپۍ دانعام په ډول ورکړے[۲].

ولے داسے معلومیږی چه د پرله پسے فوځ کشۍ او د کثرت ے نوشۍ له کبله د شاه بېگ (خان دوران) د طاقت سره د هغهٔ په ارادو او د زړهٔ په ولولو کښے هم کمے راغلے وو ـ او هغه اوس په وس سره د پښتنو مقابلے ته مخ نهٔ نیولو ـ له دے کبله د احداد سرګرمۍ په خپل حال جاری وے ـ او چه شاه بېگ په خپل مقصد کښے کامیاب نهٔ شو نو هغهٔ د صحت دخرابۍ په بِنا د خپلے عهدے نه استعفیٰ ورکړه ـ او د هغهٔ په ځائے مهابت خان د کابل او بنگښ صوبه دار او تاکلے شو[۳].

---

[۱] توزک جهانگیری ص ۲۲۰-۲۱

[۲] توزک جهانگیری ص ۳۳۰

[۳] توزک جهانگیری ص ۴۲۰

لکه چه اووئیلے شول - د روښنائ تحریک د قیادت واگے داحداد په لاس کښے وے چه د شیخ عمر ځوے او بایزید نمسے وو - لیکن داسے معلومیږی چه د بایزید دکورنئ یو بل غړے الله داد چه د جلال الدین ځوے وو د مغل حکومت په پره وو. په دے باب کښے جهانگیر داسے وائی :-

"چه مهابت خان دکابل او بنگښی په صوبه دارئ او تاکلے شو نو د مهابت په خصوصی درخواست الله داد افغانستان ته موږ د رشید خان خطاب ورکړو - او هغه مو د مهابت خان نائب مقرر کړو - د مهابت خان داخیال وو چه د پښتنو په مغلوب کولو کښے د الله داد نه کار واخستے شي - لیکن ما د احتیاط د پاره د الله داد ځامن د یرغمل په ډول په دربار کښے ایسار کړل - کوم وخت چه مهابت خان د خپل ځوی په ما تحتی کښے په پښتنو فوځ کشی اوکړه. نو د هغوی سره ے الله داد هم اولیږلو - ولے د مهابت خان فوځونو شکست اوخوړ - په دے موقع الله داد هم بغاوت اوکړو. چنانچه ما د مهابت خان په درخواست د الله داد ځامن دګوالیار په قلا کښے قید کړل[۱] خو الله داد بیا په خپلو کارونو پښیمانه شو - او دباقر خان (نوے یو امیر) په ذریعه ے د اعتماد الدوله په سفارش ما دا حکم اوکړو چه که الله داد په شاهی دربار کښے حاضر شي - او په خپلو کارونو پښیما نی ظاهره کړی - نو د هغهٔ قصور به معاف شي - الله داد هم دغه شان اوکړل - په دربار کښے حاضر شو - او د هغهٔ قصور معاف کړے شو[۲] -"

لکه چه اووئیلے شول - د مهابت خان دګورنرئ په زمانه کښے د روښنائ فرقے حملے د احداد په مشرئ کښے جاری وے - او مغل فوځونه د دوئ په تسخیر کښے کامیاب شوی نهٔ وو - هرکله چه مهابت خان د جنګ په میدان کښے په دے پښتنو کامیاب نهٔ شو - نو هغهٔ د سیاست او فریب نه کار واخست - داحداد په مرستیالو کښے لویه قبیله داورک زو وه - او په دے قبیله کښے د دولت خیلو ځانګه چه د کوهاټ سره نزدو استوګنه وه به خصوصیت سره د احداد په پره ولاړه وه - مهابت خان د دے قبیلے نه درے سوه ملکان او مشران د جرګے او مشورے په غرض کوهاټ ته راوبلل - او د هغوی دعوت ے اوکړو - بیا ے خلعتونه ورکړل - او د مشورے په غرض ے دربار ته دننه کړل - د پښتنو د جرګے د اصولو مطابق د دوئ نه وسلے لرے کړے شوی وے - څه وخت چه دا بے وسلے او ناخبره خلق د مشورے

---

[۱] توزک جهانگیری ص۵۵۵ • [۲] توزک جهانگیری ص۶۳۲

په غرض دربار کښې کښیناستل. نو د مهابت خان په حکم دوئ ټول اووژلے شول. د مهابت خان دا فعل د يو ذمه وار حاکم په حيثيت کښې انتهائي بزدلانه او شرمناک وو. د خپل شخصي ضمانت او اعتماد د وعدے باوجود د مشورے او جرګے په بهانه د خپلو مخالفينو په داسے رنګ وژل يو داسے فعل وو چه په هيڅ رنګ ورله جائز نهٔ شي ويلے. د مکرو فريب د غه شان يو واقعه د رواياتو په بِنا د الغ بېګ سره چه د بابر نه وړاندے د کابل حاکم وو. هم منسوبه ده. يعني دا ويلے شي چه الغ بېګ مرزا د يوسف زو نهه سوه مشران هم د غه شان د دعوت په بهانه بللي او بيا وژلي وو.

مهابت خان په خپل خيال کښې د روښنائي تحريک مرستيال او د سرسړي وژلي وو. او داے توقع وه چه په دے واقعه به پښتانهٔ کمزوري شوي او ويريدلي وي. نو د دے نه پس ډهخهٔ د خپل يو نائب سيد عزت خان په مشرتيا کښې د احداد مقابلے ته فوځونه اوليږل. احداد او د ډهخهٔ ډله د تيراه په علاقه کښې د د وادئ مستوره ،، په پورتني حصه کښې ميشته وه. په وادئ مستوره کښې د ورننوتلو اسانه لار د خانکي په څنډه کښې د سمپګے په دره کښې تيريږي. مغل فوځ هم په دے لار روان شو. د دوئ مقابلے ته افريدي او اورک زي قبائيل د ،، احداد ،، او ،، ملک تور اورک زي ،، په مشرتيا کښې د غرهٔ په اوچتو څوکو تيار ناست وو. مغل فوځ د خپل کماندار سيد عزت خان په کمان په دوئ پسے غرهٔ ته روان شو. او قريبًا دوه زره فټه اوچته زوړه نه لاړے او وهله. د دے غزيږے لارے مغل فوځ ډير ستومانه کړو. به هرحال د طرفينو په مينځ کښې لاس په لاس جنګ شروع شو. پښتانهٔ د مغل فوځ نه تاؤ شول. په يو موقع مغل کماندار سيد عزت خان د يو اورک زي سره چه پنجو نوميدهٔ. او فيروز خيلو په ټانګه کښې وو ورمخامخ شو. دواړه سمدستي په يو بل ورا و دانګل. او مرئ په مرئ شول. او په کشتئ کښې دواړه د زوړ نه ښکته اورغړيدل. د غه وخت د پنجو د مرستے د پاره د ډهخهٔ نور ملګري هم را اورسيدل. ولے دوی دواړه په يو بل پورے داسے انښتي وو چه په عزت خان باندے د ګذار سره پنجو هم نهٔ شو ږم کيدے. د غه وخت پنجو خپلو ملګرو ته اووے چه ما د دهٔ سره اووژنئ خو چه دے درنه خلاص نهٔ شي او هغوی هم د غه شان اوکړل.

مغل فوځ د خپل کماندار په مرګ ډير وارخطا شو. دوئ نهٔ خو د لارو کو درونه واقف وو او نهٔ د غرونو د جنګ عادت وو. د غه وجه وه چه پښتنو به بد راګير کړل. د سيد عزت خان په مرګ د دوئ زړونه کمزوري شوي وو. باقي فوځ د نائب کماندار

جلال خان ګکهړ په ماتحتۍ کښې تېښته اوکړه. پښتنو هم ورپسې بلهٔ راښکلې او دکابو او غشو داسې باران ئې پرې اوکړو. چه د مغل فوځ لويه حصه زيان شوه. نائب کماندار جلال خان هم هم اوو ژلے شو او باقي نيم نيمګوړے فوځ کوهاټ ته په بد حال رااورسيد. او د مهابت خان د مکر و فريب بدل پښتنو په څو چنده زيات واخستلو.

د دے جنګ اهميت او د مغل فوځ نقصانات د دے نه معلوميږي چه جهانګير هم په خپل توزک کښې دا واقعات ذکرکړي دي. د هٔ وائي:۔

په بنګښ کښې چه کوم لښکر مقيم وو په هغ کښې سيد عزت خان او جلال خان شهيدان شول. د دے ساعږ تفصيل داسې دے چه د فصلونو وخت شو نو مهابت خان د بنګښو په علاقه ورد ننه شو او د هغوی په پټو کښې غارو ی ليد کړل. او د بربادۍ او تباهۍ د پاره ئې لښکر مقرر کړو. او هغوی ته ئې اجازت ورکړو چه په لوټ، تالان او تباهۍ بربادۍ کښې هيڅ کمے او نهٔ کړي. د بده مرغه چه لښکر د کڅۍ زوړ ته اورسيد نو چارچاپيره پښتنو د کڅۍ په پورتنۍ حصه قبضه کړي وه. او خپل دفاع ئې ښه مضبوط کړے وو. جلال خان چه تجربه کار او سن رسيده وو. څو ورځې په دے ځائے کښې دايسارېدلو په حق کښې وو. د هغهٔ دا خيال وو. چه د پښتنو مختصر سامان خوراک به چه دوئ ئې د ځان سره په شا باندے پليټے ګرزوي. زر ختم شي. او بيا به دوئ خوارهٔ شي. او لښکر ته به په تيريدو کښې څه خطره نهٔ وي. که چرے د جلال خان په رائے عمل شوے وے نو په دے صورت کښې به پښتنو ته هيڅ بند بيا نهٔ وو ورغلے. او هغوی به د هغلو کارونو سزا موندلې وه. ولے سيد عزت خان چه د اوريوه لمبه او د دشمنا نو په حق کښې تند روو. د جلال خان سره متفق نهٔ شو. او د يو څو سادات بارهه په ملګرتيا کښې د زغرے او جوشن نه بغير وړاندے لاړ. دغه وخت پښتانهٔ د غلو ر وارړو طرفو نه د مچ ميږو په شان په هغهٔ راپنهٔ شول. او هغه ئې ګير کړو. او سره د دے چه د جنګ ميدان داس د زغل قابل نهٔ وو، د هغهٔ د قهر لمبه چه به په کومه څه شوه نو په خپله توره به ئې د شلګونو د ژوند درمن او سوزولو. تر دے چه د ښمنانو د هغهٔ داس نه پښے پريکړے. دغه وخت هغه د هغلو ملګرو سره په ډيرے زړورتيا داس نه کوز شو. او جنګ ئې کولو. او ترڅو چه په هغهٔ کښې ساه غړيدله تر هغ جنګيدلو. کوم وخت چه سيد عزت خان په پښتنو حمله اوکړه دغه وخت جلال خان ګکهړ، مسعود ولد احمد بيګ، بيژن ولد نادعلي هم د نورو شاهي ملازمانو سره بے اختياره د کڅۍ نه چارچاپيره ور وړاندے شول. ولے پښتنو د خوا او شا په لوړو باندے مورچے

نیولے وے ۔ او تیر اندازی او سنګ باری به ئے کوله ۔ شاهي ملازمانو اومهابت خان ماتحتانو ښه جانثاری اوکړه ۔ ډیر پښتانه ئے اووژل ۔ په دے جنګ کښے د سید عزت خان نه علاوه جلال خان ، مسعود او د شاهي لښکر نورو ډیرو افرادو جانثاری اوکړه ۔ او سرونه ئے ورکړل ۔ ولے د عزت خان د تند مزاجئ له کبله شاهي لښکر شکست اوموندو ۔ مهابت خان چه دا د دهشت ناک خبر واورید نو هغهٔ زرتازه دم کومک ور اولیږلو ۔

فوځ څوکئ ئے د نوی سرنه بیا مضبوطے کړے ۔ اوکوم ځائے چه به د مخالفینو او دشمن پته لګیدله ۔ دهغوی په نیولو او وژلو کښے به ئے کے نهٔ کولو ۔ ماته چه د دے واقعے خبر راغے نو د جلال خان کشر وور اکبر قلی ے چه د کانګړے په مهم تلے وو ۔ راواغوښتلو ۔ او د هزاری ذات و هزاری سوار منصب ے ئے زیات کړو ۔ او د هغهٔ موروثی ملک ے حسب سابق د هغهٔ جاګیر مقرر کړو ۔ خلعت او اس ے ورکړو ۔ او د بنګښ د لښکرپهکومک ے اولیږلو ۔ عزت خان اګرچه وروستو خپل یو ورکوټے څوئے پرے ښودلے وو ۔ لیکن د عزت خان د جانثارئ په وجهے د هغهٔ منصب د هغهٔ ورکوټي څوی ته عنایت کړو ۔ د دے دپاره چه د هغهٔ لواحقین د پریشان حالئ له کبله خوارهٔ وارهٔ نهٔ شي ۔ او دا نوازش به د جانثارانو دپاره د امید یو روښانه شمع اوګرځي ۔ د مهابت خان دکومک په عرض د عاقل خان نوے یو منصب دار په ماتحتئ کښے یو بل لښکر هم اولیږلے شو ۔[1]

مغلو چه به د پښتنو سره کوم سلوک کولو د هغے یو سرسری اندازه دجهانګیر د دے بیان نه لګیدے شي ۔ په دے صورت کښے دا ظاهره ده چه که پښتنو د مغل حکومت اطاعت ته سرنهٔ کیښودلو نو په هغے کښے د وئ ګرم نهٔ وو ۔ په دے بیان کښے جهانګیر د خپلو فوځونو د شجاعت او میړانے ذکر هم په شاندارو الفاظو کښے کړے دے ۔ لیکن دا ظاهره ده چه جهانګیر د جنګ د میدان نه ډیر لرے په دارالخلافه کښے ناست وو ۔ او هغهٔ به هغه څه لیکل کوم چه د مغل فوځ واقع نویسو هغهٔ ته ورلیږل ۔ او په دے صورت کښے دا یقیني ده چه اصل واقعات به مسخ کیدل ۔ د دے باوجود جهانګیر د دے حقیقت په اظهار مجبور شوے دے ۔ چه مغل فوځ ته شدید نقصان رسیدلے دے ۔

د بنګښو د دے جنګ نه پس هم د اجداد په سرګرمیانو کښے څه فرق نهٔ وو راغلے ۔

---

لے توزک جهانګیری ص۳۳۲

او د مغلو او پښتنو تر مینځه جنګونه جاري وو. په کال ۱۶۲۶ء کښې د احداد سرګرمیانې بیا زیاتې وې. د دغه وخت جهانګیر هم په کابل کښې وو. هم په دغه کال د کوهاټو د سویلي غرونو په سلسله کښې د ,, لواغر ،، په غزه کښې د مغلو او احداد تر مینځ یو ټل بیا شدیده مقابله اوشوه. په دې جنګ کښې احداد د یوې مورچې نه بلې مورچې ته د تلو په وخت کښې د مغل کماندار ظفرخان ولد خواجه ابوالحسن د لاسه اووژلے شو. داحداد په دې ناساپي مرګ د هغهٔ د مرستیالو زړونه مات شول. او هغوی میدان پرې ښود.

د احداد په مرګ مغل د یو داسې دشمن نه خلاص شول. چه د هغوی د پاره ئے ناقابل تسخیر حیثیت اختیار کړے وو. د دغه وجه وه چه د هغهٔ په مرګ په ټول سلطنت کښې د خوشحالئ نعرې اووهلې شوې. د احداد سر، نیزه او د هغهٔ مهر د افتخارخان ولد احمد بیګ خان کابلي (ریو امیر) په لاس کابل ته د جهانګیر په خدمت کښې اولیږلے شول. او جهانګیر د دې په لیدو دومره خوشحال شو چه د شکرئ سجده ئے ادا کړه. او حکم ئے اوکړو چه د احداد سر د لاهور د قلا په دیوال باندې زوړند کړے شي.

د احداد په مرګ اګر چه روښنائي تحریک ته لویه صدمه اورسیدله. لیکن دا تحریک ختم نهٔ شو. او نهٔ د مغلو په مخالفت کښې څه کمے راغلو. د احداد د مرګ نه پس د هغهٔ ښځې بي بي الائئ د تحریک واګې په لاس کښې واخستې. دا میرمن ډیره هوښیاره، مدبره او ورسره زړوره هم وه. ډیر زر ئے د ټول تحریک تار په تار اجزا بیا راغونډ کړل. او په تیراه کښې د خپلو مرستیالو یو لوئے جمعیت قائم کړو.

د احداد د مرګ نه پس جهانګیر هم په کابل کښې زیات اتال نهٔ شو. بیرته لاړ او په کال ۱۶۲۷ء کښې وفات شو. د جهانګیر د وفات نه پس د هغهٔ ځوئے شاهجهان د هند باچا شو. او د دهٔ په وخت کښې د هندي پښتنو په باب کښې د مغل حکمرانانو پالیسي بیا بد له شوه.

# شاه جهان

## او د پښتنو په باب کښې دهغهٔ پالیسی

لکه چه اووئیلے شول . جهانګیر په کال ۱۶۲۷ء کښې وفات شو۔ او د هغهٔ په ځائے شهزاده خرم د شاه جهان په نامه بادشاه شو۔ د پښتنو په باب کښې د جهانګیر پالیسی ډیره فیاضانه وه۔ ددهٔ په وخت کښې پښتانهٔ امیران په مغل دربار او د حکومت په معاملاتو کښې دلوئے اثر خاوندان وو۔ بالخصوص خان جهان لودی د عروج انتها ته رسیدلے وو۔ او دجهانګیر هم په خپلو ټولو امیرانو کښې هم په دهٔ زیات اعتماد لرلو۔ لکه چه د ماثرالامراء د دے جملے نه دا حقیقت واضح دے۔ " درمحرمیت و اعتبار سخن شریک و سهیمے نه داشت "۔ د خان جهان دا اقتدار اندازه د دے نه هم لګیدے شی چه د بادشاه کیدو نه پس په یو موقعه شاه جهان خپل یو امیر سید خان جهان ته دا اووے " این خطاب (خان جهان) آن مخنث است که ما وجمیع شاهزادګان منتظر نګاه او بودیم ولے او از استغنا به کسے نظر نمی کرد " دغه وجه ده چه په ۱۶۲۷ء کښې یواځې جهانګیر مړ نهٔ شو بلکه د هندی پښتنو د عروج ستورے هم په تیرو کښې پټ شو۔

دخپل حکومت په اغاز کښې شاه جهان هم د پښتنو په باب کښې د پلار په پالیسئ روان وو۔ دا حقیقت د دے نه څرګند یږی چه هغهٔ خان جهان لودی معاف کړو۔ په دکن کښې ئے په خپله زړه عهده پرے سبود۔ او دهغهٔ د منصب هفت هزاری ذات و هفت هزاری سوار توثیق ئے اوکړو۔ هغهٔ نهٔ صرف خان جهان لودی سره د رواداری سلوک اوکړو بلکه هغهٔ هغه دریا خان روهیله هم معاف کړو کوم چه د شاه جهان نه خان جهان ته تښتیدلے وو۔ بادشاه ددهٔ منصب هم زیات کړو۔ او د چار هزاری ذات او چار هزاری سوار په منصب ئے ترقی ورکړه۔ په دے دول هغه شیرخان ته هم د پنج هزاری ذات و پنج هزاری سوار منصب ورکړو۔ او د ګجرات په ګورنرئ ئے اوټاکلو۔ دغه شان هغهٔ

دځینې نورو پښتنو امیرانو لکه په مثال کښې د بهلول خان میانه، مبارز خان، شهباز خان، ثاني او جلال خان کاکړ منصبونه زیات کړل۔ او په پښتنو کښې ځینې نوی منصب داران لکه بهادر خان او جلال خان کاکړ او داسې نور مقرر کړل۔ ولې دا حالت ډیر زر بدل شو۔

د جهانګیر د وفات (سـ۱۶۲۷ئـ) په وخت کښې شاه جهان په دکن کښې وو۔ او خان جهان لودی هم د دکن نائب الحکومت وو۔ د پلار د مرګ نه پس شاه جهان دخپلې بادشاهۍ اعلان اوکړو۔ او د خپل وکیل په ذریعه ئے خان جهان لودی ته یو فرمان ورواولیږلو۔ چه په هغې کښې په دکن کښې د خان جهان دګورنرۍ او د هغه دخطاب (خان جهانۍ) توثیق شوے وو۔ او د دے نه علاوه ئے خان جهان ته د سپه سالارۍ عهده هم ورکړې وه۔ ولې خان جهان د دے فرمان مطابق د شاه جهان د تخت نشینۍ سره څه لیوالتیا ظاهره نۀ کړه۔ او د دے وجه دا وه چه په بل لور نور جهان بېګم د خپل زوم شهریار د بادشاهۍ اعلان کړے وو۔ او هغه په لاهور کښې تخت نشین شوے وو۔ دغه شان چه د جهانګیر سره کوم امیران موجود وو هغوی د آصف خان په مشوره د جهانګیر د وفات سره سم د شهزاده خسرو یو ځوئے داور بخش بادشاه کړے وو۔ ولې په اصل کښې دا د آصف خان یو سیاسي چال وو۔ او د دے نه ئے مقصد دخپل زوم شاه جهان د پاره لاره هوارول وو۔ په دے حالاتو کښې خان جهان دا غوره اوګڼله چه د تخت نشینۍ په دے کشمکش کښې غیر جانبدار پاتے شي۔ او چه کوم بادشاه شي۔ د هغۀ به اطاعت اختیار کړي۔

ولې شاه جهان دخپلو نورو حریفانو په مقابله کښې کامیاب او بادشاه شو۔ دغه وخت خان جهان لودي د خپل وکیل په ذریعه د شاه جهان په خدمت کښې څه موزون تحائف اولیږل۔ او د هغۀ د وفادارۍ اقرار ئے اوکړو۔ اګرچه د تخت نشینۍ په کشمکش کښې د خان جهان غیر جانبداره پاتے کیدل حق به جانب وو۔ لیکن په دے خبره د شاه جهان زړۀ د هغۀ نه خیرن شوے وو۔ بیا هم شاه جهان د هغۀ وفاداري اومنله۔ او هغه ئے په خپله عهده په دکن کښې پرے ښود۔ ولې لږ ورځے پس (سـ۱۶۲۸ئـ) ئے هغه د دکن د ګورنرۍ نه لرے کړو۔ او مالوے ته ئے اولیږلو۔ د دکن په ګورنرۍ د خان جهان لودی زوړ حریف مهابت خان او ټاکلے شو۔ او شاه جهان هغۀ ته د خان خانان خطاب ورکړو۔ د دے نه د شاه جهان او خان جهان لودی ترمینځه د بدګمانۍ آغاز اوشو۔ خان جهان ته په دے خبره لویه صدمه او

رسیدله - چه شاه جهان دهغهٔ ځوانئ او قدیم خدمات نظرانداز کړل - او یو نوی او نا ازمایلی امیر (مهابت خان) ته ئے په دهغهٔ ترجیح ورکړه - به هر حال خان جهان لودی مالوے ته لاړ او هلته ئے د جهجهار سنګه بند دیله بغاوت ختم کړو - په جنګ کښې جهجهار سنګه اووژلے شو -

د دے نه پس شاه جهان هغه ډیر زر دارالخلافه ته راوبللو - چنانچه خان جهان د خپلو متعلقینو او ملازمانو سره اګرے ته راغے - د جهانګیر په وخت کښې به د خان جهان لودی استقبال ته ټول لوئے لوئے امیران وتل - ولے شاه جهان د خان جهان راتلو ته څه اهمیت ورنکړو - او دا اوله موقعه وه - چه د خان جهان په زړهٔ کښې ئے دا ویره پیدا کړه چه شاه جهان د دهغهٔ د عزت او اقتدار په کمولو کښې لګیا دے - اګرچه شاه جهان به په ښکاره څه داسې کار نه کولو چه د هغې نه به د خان جهان د بے عزتئ پهلو ښکاره کیدلو - ولے عملاً به د دهغهٔ سلوک داسې وو چه خان جهان ته به پرے ذهنی صدمه رسیدله - د دے نه علاوه هغه امیران چه د جهانګیر په وخت کښې به د خان جهان د نګاه کرم منتظر وو - اوس هغوی خان جهان سره سیالی بلکه د هغهٔ نه د برترئ دعوے شروع کړے - په دے خبرو به د خان جهان عزت نفس مجروح کیدلو د دارالخلافه د قیام په دوران کښې دا مشهوره شوه چه خان جهان عنقریب ګرفتار کیدونکے دے - خان جهان خو هسې هم د شاه جهان د رویے نه مایوس وو نو په دے خبره ئے په زړهٔ کښې نوره خطره هم پیدا شوه او هغهٔ دربار ته تلل راتلل بند کړل - اګرچه شاه جهان دهغهٔ ته امان نامه هم اولیږله - ولے په دے امان نامه هم دهغهٔ تسلی او نهٔ شوه - او یوه شپه په چپه خوله د اګرے نه د خپل آل و عیال او ملازمینو سره او تښتیدهٔ -

شاه جهان چه د دے نه خبر شو نو هغهٔ د خان جهان د ګرفتارولو په غرض څه فوځی دستے اولیږلے - دے فوځی دستے هغه د اګرے نه اوولس کروهه لرے د دهولپور په مقام راګیر کړو او اګرچه د جنګ په نتیجه کښې د خان جهان څه ځامن، عزیزان او امیران اووژلے شول - ولے خان جهان په تیښته کښې کامیاب شو او دکن ته اورسید.

د دکن د ګورنرئ په زمانه کښې خان جهان د احمد نګر د والی نظام الملک سره ښهٔ تعلقات ساتلی وو - دغه وجه وه چه هغه احمد نګر ته لاړ - د نظام الملک دا مدعا وه چه د خان جهان د بغاوت په وجه به هغه په مغل سلطنت کښې څه لږ

اوکړي - ځکه هغهٔ د خان جهان ډیر دارومدار اوکړو - او هغهٔ ته او د هغهٔ ملګروته ئې جاګیرونه ورکړل - او د نغدو روپو امدادئې ورسره هم اوکړو -

د خان جهان د بغاوت په وجه د شاه جهان د فوځ ځنې امیرانو لکه دریاخان روهیله، سکندرخان دوتاني ، اوبهلول خان میانه او داسې نورو هم بغاوت اوکړو. او د خان جهان سره یوځائې شول - ولې د دوئ دا من عاوه چه په دې موقع یوځل بیا د پښتنو د سلطنت د راستنولو د پاره قسمت ازماني اوکړي - او د دې جنګ واګې د قائد په ډول خان جهان لودی ته حواله کړې - ولې داسې معلومیږي چه د شاه جهان نه د خان جهان د بغاوت مقصد د پښتنو د سلطنت راګرزول نهٔ وو بلکه د شاه جهان د رویّې نه چه د خان جهان عزت. واقتدار ته کوم صدمه رسیدلی وه دا د هغې رد عمل وو- د غه وجه وه چه هرکله دریا خان وغیره امیرانو خان جهان ته ځپل مقصد ظاهرکړو نو هغه د دوئ سره د اتفاق کولو نه انکاراوکړو- او داځ اووې:-

.. زما عمر د پنځوسو کالو نه اوړیدلې دې - اوزما یقین نهٔ دې چه زما ځامن به زمانه پس د سلطنت کاروبار اوچلوی - که چرې موبز دا قدم اوچت کړو نومغل به د هندوستان په هر ښار او هر کلی کښې پښتانهٔ په ګوته اولټوی او او به ئې وژني او دهغوی زنانه به وینزې کړی - او بیا به دا پښتنې وینزې ما په مړوني هم معاف نهٔ کړی - او بد رد اوسپک به راته وائي ،،

په دې مایوس کن جواب هغه پښتانهٔ امیران چه هغوی د پښتنو د سلطنت د حصول په عزض د هغهٔ خوا ته راغونډ شوی وو د هغهٔ نه جدا شول - او په دې خبره د خان جهان جمعیت ته هم صدمه اورسیدله. په بل لورشاه جهان په خپله د خان جهان په تعاقب کښې دکن ته راغې - او په هر لوری ئې په هغهٔ پسې فوځونه خواره کړل - د توقع نه خلاف د خان جهان لودی کامیابي ډیره مشکوکه شوه- په دې وجه نظام الملک چه د خان جهان سره کوم توقعات وابسته کړی وو - هغه هم پوره نهٔ شول - او د دوئ تعلقات ئې مزې شول- چنانچه خان جهان لودی هم د احمد نګر نه دولت اباد ته راغې -

خان جهان چه په کوم عرض بغاوت کړې وو - هغه چه په هغ کښې کامیاب نهٔ شو نو هغهٔ هم دا غوره اوګڼله چه د پښتنو د هندګیر امداد او حمایت د حاصلولوپه عرض د پښتنو دسلطنت دګرزولو مقصد خپل کړی - او د غه شان د ټولو پښتنو امیرانو امداد

حاصل کړی - چنانچه دغهٔ د دغه امیرانو د مقصد سره اتفاق ظاهر کړو کوم چه په ابتداء کښې دغهٔ نه ناراض شوی او تلی وو - او دغه شان دغه امیران اوس بیاد دغهٔ خوا ته راغونډ شول - او په دے ډول د شاه جهان یو باغی خان جهان د پښتنو د جنګ آزادئ د یو قائد حیثیت اوموندلو - ولے د پښتنو د سلطنت د راستولو دا جنګ دوئ په دکن کښې نهٔ شو کټلے - په دے غرض دوئ دا غوره کړه چه په څه طریقه پنجاب ته لاړ شي . او د دغه ځائ نه د سرحدی پښتنو په کومک خپل مقصد حاصل کړی -

دا سرحدی پښتانهٔ لکه چه وړاندے ویلے شوی دی - د اکبر د زمانے نه د مغلو سره په جنګونو کښې اخته وو - او په دغه ورځو کښې هم د روښنائی تحریک مرستیال د مغلو سره د یو فیصله کن جنګ په تابیا کښې لګیا وو - په دے لړ کښې دوئ د سرحد د ازادو قبائیلو د جنګ ازادئ د یو لیډر کمال الدین سره خط وکتابت هم اوکړو - او دغهٔ ته ئے خپلے ارادے او منصوبے څرګندے کړے -

کمال الدین یو هندوستانے پښتون وو - او د جهانګیر په فوځ کښې افسر وو - او دغه شیر خان ځوئ وو چه جهانګیر د خپلے تخت نشینئ په ابتدا کښې د پیښور او خیبر ګورنر ټاکلے وو - اګرچه شیر خان د شاه جهان په وخت کښې هم د مغل حکومت ډیر وفادار او کلک ملګرے وو - او د شاه جهان د لوری نه د خان جهان د بغاوت په جنګونو کښې په ډیرے ایمانداری د خان جهان برخلاف جنګیدلو - ولے د دغهٔ ځوئ کمال الدین د جهانګیر په وخت کښې د مغل فوځ نه تښتیدلے او د روښنائی تحریک په مرستیالو کښې شامل شوے وو - او د دے تحریک په تنظیم کښې ئے لویه حصه اخستې وه - د احداد د مرګ نه پس عملاً د دے تحریک واګے د کمال الدین په لاس کښې وے.
او دا هم د دهٔ د همت برکت وو چه په کال سن۱۶۳۰ء کښې یو طرف ته په دکن کښې د خان جهان لودی په قیادت کښې د پښتنو د سلطنت د راګرزولو جنګ په شدت سره جاری وو نو په بل لور هم په دغه کال د کمال الدین او عبدالقادر په ماتحتئ کښې د پښتنو یو لوئے قبائیلی لښکر پیښور محاصره کړے وو - او قریب وه چه پیښور دوئ د مغلو نه فتح کړے وے ولے نهٔ خان جهان لودی او د دغهٔ ملګری پنجاب ته په راتلو کښې کامیاب شول - او نهٔ کمال الدین او د دغهٔ ملګری د پیښور په تسخیر کښې.
او په دواړو ځایونو کښې مغلو کامیابي حاصله کړه -

لکه چه مو اووئیل خان جهان او د هغهٔ ملګرو پنجاب ته د راتلو اراده لرله. او پنجاب ته د دوئ د مالوے په لارے راتلے شو- لیکن د دور اندیشئ په بنا شاهجهان دوئ ته د مالوے په لور ټولے لارے بندے کړے وے- نو چه خان جهان او د هغهٔ ملګرو ته د مالوے لاره بنده شوه نو دوئ د ناکامه په بند هیلکنډ کنبے داخل شول- ولے د ججهار سنګه ځوی په دوئ حمله اوکړه- په دے جنګ کنبے د خان جهان یو سرګرم ملګرے دریاخان روهیله او د خان جهان نور عزیزان او ډیر سپاهیان اووژلے شول - د دریاخان غوندے ملګری په مرګ د خان جهان همت و طاقت ته لویه صدمه اورسیدله - او هغه د خپل مقصد د کامیابئ نه مایوس شو

به هرحال چونکه مغل فوځونه د دوئ په تعاقب کنبے وو. نو خان جهان د خپلو ملګرو سره د کالنجر لار اونیوله- د کالنجر سره یوځل بیا د مغلو او خان جهان لودی ترمینځه جنګ اوشو. چه په هغ کنبے خان جهان یو ځوے ګرفتار او ډیر ملګری اووژلے شول. په خپله هم خان جهان سخت ژوبل شو- دے صدمے د خان جهان ملا ماته کړه- او د هغهٔ د پاره نے د با عزته ژوند تیرولو ټولے لارے بندے کړے. چونکه مغل فوځونو هغه ساه اخستلو ته نهٔ پرے ښودلو نو هغهٔ د بے عزتئ په ژوند د عزت سره مرګ غوره کړو- او د خپلو معمولی ملګرو سره د مغل بے شماره فوځ مقابلے ته د سهنده په مقام را اووتلو- په ۱۷ فروری ۱۶۳۱ء د دوئ ترمینځه جنګ اوشو - چه په هغ کنبے خان جهان او د هغهٔ ځامن او ملګری اووژلے شول - د خان جهان او د هغهٔ د ځامنو سرونه د شاه جهان په خدمت کنبے برهان پور ته اولیږلے شول. د خان جهان سر یو ځو ورځے د برهان پور په فصیل پورے زوړند وو- او بیا د دولت خان لودی په مقبره کنبے چه د خان جهان پلار وو دفن کړے شو- او د غه شان د پښتنو د سلطنت د راستنولو دا اخری کوشش هم په ۱۶۳۱ء کنبے په ناکامیابئ ختم شو-

د خان جهان د اقتدار زوال او بیا د شاه جهان نه د هغهٔ بغاوت په مغل سلطنت کنبے د پښتنو اقتدار او اعتماد ته لویه صدمه اورسوله- د دے نه پس په مغل دربار کنبے او د سلطنت په معاملاتو کنبے په پښتنو باندے اعتماد ختم شو- او باوجود د خپلے جانثارئ وفاداری او شان دارو کارنامو پښتنو امیرانو په مغل حکومت کنبے خپل جائز حیثیت او مقام اونهٔ موندلو-

د دے کنبے شک نشته چه یو ځو پښتانهٔ امیران لکه دریا خان روهیلے، بهلول خان میانه او سکندرخان دوتانی او دا سے ځنے نور امیران د شاه جهان د فوځونو نه د خپل

خپل جمیعت سره تبتیدلی او د پښتنو د سلطنت د راستنولو منصوبه ئې شروع کړی وه. او د دے په وجه په پښتنو باندے د شاه جهان اعتماد زائل شوے وو. د دے نه پس به هغۀ یو پښتون امیر ته د ذمه واری عهده نۀ په مرکز کښې او نۀ په صوبائی حکومت کښې ورکوله. سره د دے چه ډیر پښتانۀ امیران داسے هم وو. چه هغوی د خان جهان د بغاوت په دوران کښې هم د شاه جهان په وفادارئ کلک ولاړ وو. او په ډیرے جانثارئ او راستئ ئې د شاه جهان خدمت کولو. او خپل فرائض به ئې په ښۀ طریقه پوره کول. ولے د دے امیرانو یوے جانثارئ او سرفروشئ هم په شاه جهان باندے څه اثر نۀ کولو. د خان جهان د بغاوت په موقعه ډیر پښتانۀ امیران لکه شیرخان، بهادرخان رحپه د دریاخان روهیلی څوی وو) احمدخان نیازی، خان جهان کاکړ، مبارزخان روهیلے او داسے نور شاه جهان د پاره په ډیر اخلاص او وفاداری جنګیدل. د خان جهان د بغاوت نه علاوه دغه امیرانو د دکن په جنګونو کښې او د بلخ و بدخشان په مهم تو کښې ډیرے څلا نده کارنامے سرته رسولے وے. ولے د دے انتهائی مخلصانه او سرفروشانه خدماتو باوجود هم دوئ د شاه جهان د اعتماد په حاصلولو کښې کامیاب نۀ وو. او نۀ د دے خپلو خدماتو په صله کښې دوئ خپل اصلی او جائز حق بیاموند. په دے لړ کښې به د مثال په ډول د یو دوو امیرانو ذکر کول مناسب وی.

بهادرخان روهیلے چه پورته ئې ذکر اوشو. د شهزا ګئ د زمانے نه د شاه جهان یو مخلص او جانثار ملازم وو. تر دے چه په کومو ورځو کښې د هغۀ پلار دریاخان د شاه جهان نه بغاوت کړے وو. نو بهادرخان په دے موقع د خپل پلار ملګرتیا هم اونۀ کړه. او د شاه جهان په وفادارئ کلک اودرید. چنانچه د دهٔ د دے خدماتو په اعتراف کښې شاه جهان ده له د څلور هزاری ذات او څلورهزاری سوار په منصب ترقی او په کالپی کښې جاګیر ورکړے وو. بهادرخان د خپل پلار او خان جهان په مقابله کښې په ډیرے بهادرئ جنګیدلے وو. او د دے نه علاوه د بیجاپور او احمد نګر په مهماتو کښې ئې هم ډیره مردانګی ظاهره کړی وه.

په سنه ۱۶۴۷ کښې چه د شهزاده مراد په ماتحتئ کښې کوم فوځونه د بلخ او بدخشان په تسخیر ټاکلی شوی وو. بهادرخان په دے مهماتو کښې هم د خپلے مردانګئ په وجه نمایاں شهرت حاصل کړے وو. ولے د دے غیر معمولی جان نثارئ باوجود هم شاه جهان په دهٔ اعتماد نۀ لرلو. او کوم وخت چه څینې حاسدینو شاه جهان ته دا باتئ په غوبړ کښې کینبوده. چه بهادرخان د نظر محمد والئ بدخشان په تعاقب کښې غفلت کړے دے. ورنه هغه به ګرفتار شوے وو.

او دغه شان ئې د سعید خان سره هم د اوزبکو په مهم کښې تعاون نهٔ وو کړے او شاه جهان چونکه د وړاندې نه په پښتنو باندې بے اعتماده وو نو په دې خبره ئې یقین اوکړو ـ او دومره قهر واخست چه د سزا په شکل ئې د بهادرخان نه د کالپی جاګیر واخست۔ دې واقعې د بهادرخان جذباتو ته هم لویه صدمه اورسوله ـ او د هغهٔ په دماغ کښې ئې باغیانه جذبات اوپارول۔ لکه چه وړاندې به ئې ذکراوشي ـ بهادرخان په ۱۶۴۹ء کښې د قندهار په هغه مهم کښې چه د اورنګ زیب په کمان کښې لیږلے شوے وو۔ وفات شو ـ

په دې دوړ جلال خان یوبل پښتون امیر وو ـ چه د خپلو بهترینو وفادارانه خدماتو باوجود ئې نهٔ څو د شاه جهان اعتماد حاصل کړے شو۔ او نهٔ ئې د دې بے اعتمادئ په نتیجه کښې د خپل اهلیت او خدماتو مطابق خپل جائز مقام حاصل کړو۔

جلال خان د هغه دلاورخان ځوئے وو۔ چه جهانګیر هغه د خپلے تخت نشینئ سره سم د پنجاب ګورنر ټاکلے وو ـ او د خسرو په بغاوت کښې ئې د جهانګیر قابل قدر امداد کړے وو۔ په ۱۶۳۰ء کښې چه د روښنائۍ تحریک مرستیالو پښتنو د عبدالقادر او کمال الدین په سرپرستۍ کښې پلپنور محاصره کړے وو ـ د غه محاصره د مغل فوځدار بنګښ سید خان او جلال الدین کاکړ په همت او شجاعت ختمه شوی او د پښتنو جمیعت دوئ تار په تار کړے وو۔ په دې مهم کښې د شجاعت او سیاست په لحاظ د جلال خان کاکړ برخه د سید خان نه په هیڅ وجه کمه نهٔ وه ـ ولے د دې باوجود د دې مهم کامیابي د سید خان فوځدار بنګښ په نوم اولیکلے شوه ـ او د دې په بدل کښې هغهٔ ته د پنځ هزاری منصب او د کابل صوبه داری ورکړے شوه۔ ولے د جلال خان د خدماتو هیڅ مننه او نهٔ شوه۔ په دې دوړ د شاه جهان په فوځ کښې چه هر څومره پښتانهٔ امیران وو هغوی د بهترینو خدماتو باوجود د خپل جائز حق نه محرومه وو ـ

دا یو څرګند حقیقت دے چه د خان جهان د بغاوت نه پس شاه جهان یو پښتون ته هم د صوبائۍ ګورنرۍ عهده ورنهٔ کړه۔ د خان جهان د بغاوت په ختمولو او د احمدنګر په مهم کښې د شیرخان لویه برخه ده۔ اګرچه د غه یو پښتون امیر وو۔ چه د کال ۱۶۳۱ء پورې د ګجرات ګورنر وو۔ ولے دے هم په دغه کال کښې وفات شو۔ او د دې نه پس د شاه جهان په ټول عهد حکومت کښې بل پښتون ته نهٔ د صوبائۍ ګورنرۍ عهده ورکړے شوه او نهٔ په فوځ د ذمه وارئ ـ تر دې چه د شاه جهان په وخت کښې پښتانهٔ جرنیلان په فوځ کښې هم د مغل جرنیلانو ماتحت ګڼېدل۔ او دوئ ته به د ازادانه کمان موقع نهٔ شوه

ورکیدے۔

دا حقیقت چه د شاه جهان په زمانه کښے د پښتنو په حیثیت و وقار کښے نمایان فرق راغلے وو۔ او شاه جهان د پښتنو په باب کښے د تعصب په پالیسۍ چلیدلو۔ د دے نه معلومیږی چه د شاه جهان د حکومت په وړولویو تولو منصب دارانو کښے چه په شپیر کښے (۵۸۰)وو. د پښتنو منصب دارانو شپیر صرف (۲۲) وو۔ چه صرف یو بهادر خان (چه ذکرئے وړاندے شوے دے) په کښے د پنځ هزاری منصب داروو۔ د دے موازنے نه دا صفا معلومیږی چه د خان جهان د بغاوت نه پس شاه جهان هم د پښتنو په باب کښے د اکبر په پالیسۍ روان وو۔ د دے بغاوت نه پس د پښتنو یوے جانثارۍ او مخلصانه کوشش هم د شاه جهان په نظر کښے ځائے نهٔ نیولو۔ د پښتنو په باب کښے چه د شاه جهان کوم دلی جذبات وو د هغ په لړکښے به د مثال په ډول د دے یوے واقع ذکرے ځایه نهٔ وی۔

په سنه ۱۶۳۲ کښے د بند هیلکنډ یو سردار چمپت بغاوت کړے وو۔ او په دے مهم مغل سردار عبدالله فیروز جنګ تاکلے وو۔ ولے دا مغل امیر د بند هیله سردار د بغاوت په ختمولو کښے کامیاب نهٔ شو۔ نو شاه جهان دا مهم بهادر خان روهیله ته حواله کړو۔ او هغهٔ ته ئے د بند هیلکنډ په علاقه کښے اسلام اباد د جاګیر په ډول ورکړو۔ ولے د دے تقررۍ سره سم په بهادر خان باندے د شاه جهان د بے اعتمادۍ جذبه راویښه شوه۔ او هغهٔ دا تقرری منسوخ کړه۔ او دا ئے اووے «بند هیلکنډ را روهیلکنډ کردن صلاح ملکی نیست۔»

د پښتنو په باب کښے د بے اعتمادۍ دا پالیسی نهٔ صرف د شاهجهان په ټول عهد حکومت کښے جاری وه۔ بلکه د اورنګ زیب په وخت کښے هم قائمه وه۔ او دومره څرګنده شوی وه۔ چه کوم غیرملکی سیلانیان په دے ورځو کښے هند ته راغلی دی۔ هغوی هم محسوس کړی وه۔ چنانچه:-

منوچي چه د شاه جهان د حکومت په اخری کالونو (سنه ۱۶۵۶ء) کښے اګرے ته راغلے وه۔ او د اورنګزیب عهد حکومت کښے هم ډیر کالونه په دهلی کښے پاتے وو۔ دا سے لیکی:-

«په مغل سلطنت کښے دا قانون دے چه په پښتو باندے د اعتماد نهٔ کیږی۔» په یو بل مقام کښے دا سے لیکی:-

په ټول هندوستان کښے به د کابل نه د بنګال تر سرحداتو پورے سل قلاګانے وی۔ د بادشاه د لوری نه په دے قلاګانو کښے قابل اعتماد افراد مقررولے شی۔ عموماً

دا خلق شاهي ملازمين وي ـ او اکثر د شاهي خاندان داسې افراد وي چه د هغوی وفادارئ ازمائيلې شوې وي ـ او کله راجپوت وي يا سيدان او يا مغل ـ ولې پښتانهٔ داحق نهٔ لري چه دوئ هم په دې عهده مقرر شي ـ د دې خطرې پيش نظر چه هسې نه دوئ بيا هغه شان سازش اوکړي څه رنګ چه دوئ د همايون برخلاف کړې وو ؎

ولې د اورنګزيب په عهد حکومت کښې د سلطنت سياسي معاملاتو داسې پيچيدګي اختيار کړې وه ـ چه د پښتنو په باب کښې د بې اعتمادئ او نفرت د پاليسۍ باوجود مغل حکومت د پښتنو د فوځي تعاون نه بې نيازه کيدې نهٔ شو ـ په دغه زمانه کښې ډير واقعات مثلاً د سيوا جي عروج او په دکن کښې د مرهټيانو سره جنګونه ، د دکني بادشاهانو برخلاف د اورنګزيب فوځي اقدامات ، د راجپوتو او جاټانو بغاوتونه او د "ست ناميانو" شورشونه داسې واقعات وو چه په دې کښې اورنګ زيب د خپل پښتون فوځ په طاقت اعتماد و انحصار لرلو ـ

د اورنګزيب په عهد حکومت کښې د هغهٔ يو پښتون جرنيل "دليرخان" د خپلو مخلصانه او شجاعانه کارنامو په وجه ډير شهرت حاصل کړې وو ـ ولې د دې باوجود هم اورنګ زيب هغهٔ ته د ذمه وارئ عهده نهٔ ورکوله ـ په ۱۶۸۳ء کښې دليرخان د بيجاپور په جنګ کښې د شهزاده شاه عالم په ماتحتئ کښې د يو ماتحت کماندار په حيثيت جنګيدلو ـ شهزاده شاه عالم د خپل پلار نه د بغاوت اراده لرله ـ او په دې سازش کښې د دليرخان نه هم د مرستې خواهش اوکړو ـ ولې دليرخان د اورنګ زيب برخلاف دې غدارئ ته تيار نهٔ شو ـ چنانچه شهزاده شاه عالم د خپلې ويرې نه هغهٔ ته په اعتبارکښې زهر ورکړل ـ او دغه شان دې مخلص جرنيل خپل ځان په اورنګ زيب قربان کړو ـ د دې واقع په باب کښې منوچي داسې وائي :-

" د دې جرنيل په مرګ اورنګزيب ته لويه صدمه اورسيدله ـ او اګر چه دې پښتون وو ـ ولې اورنګزيب د دهٔ سره ډيره مينه لرله ؎

د فرانسيسي سياح برنيز چه په هندوستان کښې د ۱۶۵۸ء نه تر ۱۶۶۷ء پورې پاتې شوې او د مغل دربار سره ئې ډير تعلق وو ـ ليکونه هم د پښتنو په باب کښې د مغل د بې اعتمادئ د پاليسۍ مرسته کوي ـ د دې نه دا صفا معلوميږي چه دا صرف سياسي تقاضې او فوځي ضروريات وو ـ چه مغل شهنشاه ئې په خپلو فوځونو کښې د پښتنو په ساتلو مجبور کړي وو ـ او دا وئيل بې ځايه نهٔ دي چه په دغه زمانه کښې د پښتنو فوځي طاقت د مغل سلطنت د بقا يو ذريعه وه ـ لکه چه وړاندې وئيلې شوي دي په کال ۱۶۲۷ء کښې جهانګير وفات شو ـ او د هغه نه

یوکال وړاندې په سنه ۱۶۲۶ کښې د روښنائۍ تحریک قائد احداد د ظفر الله خان د لاسه وژلے شوے وو. د جهانګیر په ځائے د هغهٔ ځوئے تخت نشین شوے وو. او د احداد د وژلو په انعام کښې ظفرخان د کابل صوبے ګورنر.

د احداد د مرګ نه پس اګرچه د تحریک واګے د هغهٔ ښځې بي بي الائۍ په لاس کښې اخستے وے. لیکن د پښتنو د قامي خصوصیاتو په بنا د پښتنو د پاره د یوے ښځې مشري منل او د هغې په سرګردګۍ کښې جنګیدل ګران وو. د غه وجه وه چه د بي بي علائۍ په سرپرستۍ کښې د تحریک واګے د هغهٔ ځوی عبدالقادر ته حواله شوے. او د ظفرخان د ګورنرۍ په وخت کښې د روښنائۍ تحریک قائد عبدالقادر وو. ولے د دے تحریک په تنظیم کښې د هغه کمال الدین هم لوئے لاس وو. چه ذکرئے وړاندے شوے دے.

د شاه جهان د تخت نشینۍ په اول کال ظفرخان د پیښور نه کابل ته روان شو. د غه وخت د خیبر لاره د بي بي الائۍ او عبدالقادر په سرپرستۍ کښې افریدو اورک زو بنده کړې وه.

ظفرخان ته خپلو امیرانو د خیبر په لار کابل ته د تلو نقصانات او خطرات څرګند کړل. ولے د احداد په وژلو هغه دومره غاور شوے وو. چه هغهٔ دا مشوره قبوله نهٔ کړه. او د خیبر لارئے اونیوله. ولے چه په خیبر کښې ورد ننه شو نو افریدی او اورک زی پرِ د هر ګوټ او ترے له خوا اوزومبیدل. او د مغل فوځ نهٔ ئے داسے بند پیوند خطا کړو. چه په ډیرے شرمناکه طریقه ئے شکست اوموند. ډیر اووژلے شول او د پښتنو په لاس بے اندازے مال واسباب هم راغے. په خپله ظفرخان په ډیر بد حال کابل ته اورسید. په دے اړی ګړی کښې د ظفرخان د حرم بیبیا ئے هم د پښتنو په لاس راغلے. چه په هغو کښې صرف یوه ښځه د سید خان حاکم بنګښ په کوششونو راخلاصه کړے شوه.

د پښتنو د دے لوئے فتح اوازه په ټولو پښتنو کښې خوره شوه. او د دے نتیجه دا شوه چه تقریبًا ټول پښتانهٔ قبائیل د بي بي الائۍ او عبدالقادر په مرسته اودریدل. د عبدالقادر د جنډے لاندے افریدی، اورک زی، بنګښ، توری، زازی، شیتک، لوهاني، او د میدانی علاقے یوسف زی او مهمندزی وغیره ټول پښتانهٔ راغونډ شول. د پښتنو په دے قبائیلی اتحاد کښې صرف خټک، خلیل او د پیښور د خوا او شا مهمند شامل نهٔ وو. دا خلق د مغل حکومت په مرسته ولاړ وو. عبدالقادر د خپلو مرستیالو پښتنو سره په پیښور باندے د حملے تابیا کوله. دوۍ خپل کیمپ د "علم ګودر" په مقام لګولے وو. ځنے پښتانهٔ قبائیل د

حضرزارخاني په مقام جمع شوی وو- دغه ورځ (جون ۱۶۳۰ء) د مغل حکومت د پاره ډیرې نازکې او خطرناکې وې- ځکه چه نهٔ خو په پيښور کښې دومره مغل فوځ وو- چه د دې عظیم قبائیلی لښکر مقابله ئې کړې وې- او نهٔ د حکومت د طرفدارو پښتنو قبائیلو طاقت دومره زیات وو چه د هغوی په وجه حکومت دومره ډاډ مند شوې وې- د حکومت طرفدار پښتانهٔ په خپله په ډیرې خطره کښې وو- چنانچه د خټکو د قبیلې سردار شهباز خان خپل ال وعیال د اکوړی نه خیرآباد ته لیږلی وو- او د خطرې په وخت کښې ئې په اټک د پورې کیدلو اراده لرله- مغل فوځ په پيښور کښې محصور وو- او د دوئ د امداد د پاره دکشمیر نه د جلال خان کاکړ په ماتحتئ کښې او د بنګښو نه د سید خان فوجدار په ماتحتئ کښې فوځونه په ډیرې تندئ رارواں وو-

په کومه لویه پیمانه چه پښتنو په مغلو فتحه اصله کړی وه- او څومره په جوش و خروش چه دوئ د مغلو مقابلې ته تیار شوی وو- هغومره زر د پښتنو اتفاق په نفاق بدل شو- او د دوئ ټوله لوبه تالا والا شوه- او واقعه داسې اوشوه چه کوم پښتانهٔ قبائیل د عبدالقادر د مرستې په غرض راغلی وو- په هغې کښې ځنې خلقو دارو پیچ خبرې شروع کړې- او داې اووئیل چه عبدالقادر او د هغهٔ دوستان د نورو پښتنو امداد او مرستې ته په درنه سترګه نهٔ ګوری- بلکه دا خیال کوی چه دا فتح اوګټې د دوئ د خپلو متو او طاقت برکت دې- دا خبرې ورو ورو زیاتې شوې- او د ګیلو معنونه باهمی الزاماتو ته اورسیدلې- دغه شان په دوئ کښې قبیلوی بخضونه او رقابتونه رااولټیدل- د دې اعتراضاتو اوګلو و دوخبرو نتیجه دا شوه چه عبدالقادر په خپلو پښتنو ملګرو بدګمانه شو- او دا خیال ئې راغ چه هسې نه عین د جنګ په وخت کښې ے دا خلق په سپین میدان پرې بزدی- او د مغلو په لاس کښې ګیر نهٔ شم- دا وسوسه د هغهٔ په زړهٔ کښې دومره زیاته شوه چه هغهٔ ههو د حملې اراده پرې ښوده- او یوه شپه په چپه خُله په تیارهٔ کښې د خپلو خاصو ملګرو سره تیراه ته لاړ- سحر چه نور پښتانهٔ قبائیل د هغهٔ په تلو خبر شول- نو د هغوی زړونه هم مات شول- او په یو بل د اعتراضاتو او الزاماتو سلسله زیاته شوه- او د دې جنګ نتیجه دا شوه چه ټول قبائیل تار په تار شول- ځنې خو د موقع نه غنګ و ستې شول- ولې ځنې ډیر لا پاتې وو- په دغه ورځو کښې مغل سید خان فوجدار بنګښی او جلال خان کاکړ او نور مغل امیران هم د پيښور امداد ته رارسیدلی وو- مغل امیرانو د پښتنو د دې بې اتفاقئ نه غټه فائده واخسته- په پښتنو ئې حمله اوکړه- کوم پښتانهٔ چه لا پاتې وو- په هغو کښې ئې ډیر

اووژل - او ځنې ډېرې گرفتار کړل - (جون ۱۶۳۰ع) -

د پښتنو د دې بې اتفاقۍ او قبیلوی رقابتونو په وجه د مغلو لویه فتحه په نصیب شوه - د پښتنو قبائیلو ترمینځه چه په دې موقع د بغض و نفاق کوم تخم اوکرلے شو - د هغې جرړې تر لرې اورسیدلے - او ډېرې خرابې نتیجې ترینه برآمد شوې - په دوئ کښې د دې نه پس اتفاق و اتحاد ختم شو او هغه قبائیلی طاقت چه د مغلو بهترینو فوځونو او سازو سامان په مخکښې د اوسپنې یو دیوال وو - تول تار په تار شو - د دې نه پس د پښتنو له خوا په منظمه طریقه د مغلو مخالفت تقریبًا ختم شو - او د پېښور په علاقه کښې د مغل حکومت نفوذ و اقتدار قائم شو - د دې بې اتفاقۍ په وجه روښنائ تحریک ته لویه صدمه اورسیدله - او د یو تحریک په حیثیت کښې د دې زور ډېر کم شو - د مغلو دا کامیابي د سید خان حاکم بنګښ په نوم اولیکلے شوه - او د دې په وجه د هغۀ په عزت او منصب کښې لویه اضافه اوشوه - شاه جهان هغۀ ته د پنځ هزاری منصب ورکړو - او هم په دې صوبه ئې گورنر اوټاکلو -

ولې په سید خان کښې ځنې خوبۍ هم وې - هغه نۀ صرف د تورې سړے وو - بلکه د سیاست د میدان هم ښۀ لوبغاړے وو - او د خپلې وعدې او لوظ قول هم پابند وو - د گورنر کیدو نه پس هغۀ د پښتنو برخلاف د جارحانه اقداماتو په نسبت د رواداریٔ پالیسي اختیار کړه - او د بي بي الائ او عبدالقادر سره ئې د صلح صلاحیت خبرې راواخستې او دا خبرې کامیابې هم شوې - عبدالقادر او بي بي الائ د حکومت د مخالفت نه لاس واخست - او د سید خان په شخصي ضمانت او وعده ئې خپل ځانونه حکومت ته حواله کړل - او پېښور ته راغلل - د عبدالقادر او سید خان ترمینځه د خبرو اترو د کامیابۍ لو وجه خو دا معلومیږی چه عبدالقادر د پښتنو قبائیلو د مرستې نه مایوس شوې وو - او هغۀ ته به د مغل حکومت سره مخالفت ساتل گران ښکاره شوی وی - د دې وجه دا هم کیدے شي چه شاید په دې صلح کښې د بي بي الائ ورور - الله داد - هم څه حصه اخستې وی - الله داد ځکه چه وړاندې ویلې شوی دی د مهابت خان د شکست نه پس دوباره د جهانگیر دربار ته تلے او جهانگیر د هغۀ قصور معاف کړے وو - امکان کیدے شي چه په دې موقع الله داد هم عبدالقادر او بي بي الائ د مغل حکومت د مخالفت نه منع کړی او په صلح اماده کړی وی - به هرحال عبدالقادر او بي بي الائ د سید خان په شخصي ضمانت پېښور ته راغلل - ولې څه لږې ورځې پس عبدالقادر په پېښور کښې مړ شو -

بي بي الائۍ ، د هغې ورور الله داد او د دوئ د خاندان نورا فراد دهلي ته اوليږلے شول ـ شاه جهان د دوئ سره ښۀ سلوک اوکړو ـ د شاه جهان د لوري نه الله داد ته د رشيد خان خطاب ورکړے شو ـ دا خطاب دۀ له يو ځل جهانګير هم ورکړے وو ـ الله داد په فرخ اباد کښے استوګن شو ـ او په کال ۱۶۴۸ء کښے مړ شو ـ د دے کورنۍ يو بل غړے مرزا خان انصاري چه د نورالدين ځوئے او د بايزيد پير روښان نمسے وو ـ د شاه جهان په فوځ کښے نوکر شو ـ او د دکن په يو جنګ کښے په کال ۱۶۳۶ء کښے اووژلے شو ـ د مرزا خان د وفات په حقله دولت الله لوهاني چه د مرزا خان هم عصر او د هغۀ ډير معتقد وو ـ دا شعر وئيلے دے ـ

د دکن جنګ کښے شهيد شو خوشنود اوسه
په تاريخ د زرځلوبينت (۱۰۴۶) د دۀ ګــــذر وو

د ځينے ليکوالو دا خيال دے چه مرزا خان د خپل مرګ په وخت کښے د خپل نيکۀ با يزيد د مسلک او عقائدو نه انکار کړے وو ـ او توبه ئے ايستلې وه ـ ولے اکثر ليکوال دا خبره نۀ مني او دا د بايزيد انصاري د مخالفينو له خوا يو الزام او د هغوی پروپيګنډه ګڼي ـ زما په خيال کښے هم د مرزا خان انصاري په حقله دا وئيل چه هغه به د خپل نيکۀ د مذهب نه اوړيدلے وي ، درست نۀ معلوميږي ـ مرزا خان يو ښۀ صوفي او ښۀ عالم سړے وو ـ هغۀ به د خپل نيکۀ د مسلک د ډير غور و فکر نه پس اختيار کړے وي ـ هغۀ د خپل نيکۀ د مسلک يو لوئے مبلغ وو ـ او خپل ټول قوت او زوربيان به ئے د دے مسلک په تبليغ و اشاعت کښے صرف کولو ـ لکه چه د دولت الله لوهاني د دے شعر نه معلوميږي ـ

د هادي په ځله چه پټ وو په څو کاله    د مرزا ځله د هغې علم مظهر وو

نو دا قرين قياس نۀ معلوميږي چه د هند په مختصره استوګنه کښے به هغۀ ته د خپل نيکه مسلک غلط معلوم شوے وي ـ د دے نه علاوه دا خبره هم لا په يقيني ډول معلومه نۀ ده چه د بايزيد انصاري مسلک واقعي غلط وو ـ مرزا خان انصاري د پښتو ژبے د يو لوړ صوفي شاعر په حيثيت تر اوسه په پښتو کښے په عزت و احترام ياديږي ـ او د پښتو د کلاسيکي ادب ټولو لوړو شاعرانو د مرزا خان د لوړ مقام ستائينه کړې ده او د دۀ ديوان په پښتو ادب کښے د صوفيانه شاعرئ يو شاهکار ګڼلے شي ـ دا ديوان په نيمګړي حالت کښے د ښاغلي همېش خليل په زيار چاپ شوے دے ـ

لکه چه وړاندے وئيلے شوي دي د روښانۍ تحريک په تنظيم و ترقئ کښے د کمال الدين

هم لویه برخه وه. دا کمال الدین د هغه کمال الدین نه جدا سړے وو کوم چه د بایزید انصاری څوئے وو. هغه کمال الدین د جلال الدین د مرګ نه پس د مغل فوځ په لاس کښې ګرفتار شوے او هم د مغلو په قید کښې مړ شوے وو. دا کمال الدین یو هندوستانے پښتون او د شیرخان ګورنر پیښور او خیبر څوئے وو. د جهانګیر په فوځ کښې ئے د هفت صدی منصب لرلو. ولے بیا د فوځ نه تښتیدلے او په روښنائی تحریک کښې شامل شوے وو په پیښور باندې د حملې د پاره چه کوم قبائیل راغونډ شوی وو. د هغو په راغونډولو کښې د دهٔ لویه برخه وه. او لکه چه وړاندې وئیلی شوی دی خان جهان لودی او څنې نورو پښتنو امیرانو په دکن کښې د پښتنو د سلطنت د راستنولو د پاره د کوم جنګ آغاز کړے وو. هغوی هم خپله رابطه د دے کمال الدین سره قائمه کړی وه. دا سړے د روښنائی تحریک سره د خپل عقیدت او د دے تحریک د خدماتو په لړ کښې دومره مشهور وو چه د دهٔ نامه به د تحریک اولنی قائد جلال الدین سره برغده اخستلے شوه.

دا خبره چه جلال الدین په خپل ژوند کښې د مغلو د پاره یو ناقابل تسخیر حیثیت اختیار کړے وو. او د دهٔ د دے حیثیت چه څومره ژور اثر په خلقو باندې شوے وو هغه د دے نه څرګند دے چه د پښتنو په علاقه کښې د څنې سختو او دشوارو مقاماتو نومونه د دهٔ په نامه منسوب دی. د اټک قلا ته مخامخ په هغه مقام چه اباسیند سره لنډے سیند یو ځائے کیږی. هلته د سیند په مینځ کښې دوه تور غټ ګټان دی. دا ګټان د جلالیه او کمالیه په نومونو مشهور وو. په هغه زمانه کښې چه خلقو به په اباسیند کښې په کشتیو عبور و مرور کولو. داوړی په موسم کښې به دا ګټان اکثر د سیلاب او بو په وجه په اوبو کښې پټ وو او د دے سره بے شماره کشتۍ جنګیدلے او ډوبیدلے. د روښنائی تحریک مخالفینو به دا وئیل چه څنګه دا ګټان د خلقو د مادی اجسامو د تباهۍ باعث ګرزی، د غه شان د دے تحریک بانیان جلال الدین او کمال الدین هم د مسلمانانو د عقائدو د تباهۍ باعث او د دوئ د روحانیت تباه کوونکی دی. د ختکو په علاقه کښې د چراټ سره نزدو په یو غرڅوکه هم په "جلاله سر" مشهوره ده. د غه شان د صوابئ په علاقه کښې هم یوه دره د جلال درے په نامه یادیږی.

دا نومونه د بایزید او د هغهٔ د اخلافو د هغه لوئے اثر و نفوذ یادګیرنه کوی کوم چه هغوی په خپل وخت کښې په پښتنو باندې قائم کړے وو. د دوئ مذهبی عقائد ښهٔ وو یا بد، دا یو ځان له سوال دے. ولے تاریخ په دے ګواه دے چه په پښتنو کښې د

خپلې آزادۍ د حفاظت جذبه هم ددې تحريک او ددې کورنۍ د افرادو دکوښښونو پيداوار دې. او په دې لحاظ سره د دوئ هره کارنامه د مخالفينو د هر الزام نه زياته ورن داره او د ستائينې وړ ده.

دا تحريک لکه چه وړاندې وئيلې شوې دې په خپل آغاز کښې بېخي يو مذهبي تحريک وو. ولې د هغه زمانې د حالاتو او سياسي تقاضو په نتيجه کښې سياسي حيثيت اومونډلو. او د ,, شيخ عمر ,, نه پس خو ئې بېخي سياسي شکل اختيار کړې وو. ولې چونکه په خپل نوعيت کښې دا يو مذهبي تحريک وو. او په پښتنو کښې هر تحريک د مذهب په نامه مقبوليت مونډلې شي نو د بايزيد اخلافو ددې مذهبي رنګ و روغن هم قائم اوساتلو. او د يو قام په ډول ئې د پښتنو قبائيلو په تنظيم کښې هم کاميابي حاصله کړه. بايزيد په خپله پښتون او د پښتنو په خوئ بوی او نفسياتو پوه وو. هغه د مغلو د شخصي استبداد شديد مخالف وو. پښتانه د پخوا نه د خپل قبائيلي نظام لاندې ازاد راغلي وو. مغلو دوئ د غلامۍ په زنځيرونو کښې ښکيل کول. نو دا لازمي خبره ده چه بايزيد او د هغه اخلافو به ددې مخالفت کولو. اوکه چرې دا تحريک کامياب شوې وې نو د مغل حکومت اقتدار و استقلال به په دې علاقه کښې ناممکن شوې وو. په دې بنا د مغل حکومت په سرپرستۍ کښې ددې تحريک مخالفت په مذهبي رنګ کښې شروع شو. او ددې نتيجه دا شوه چه پښتانه قبائيل د دوو مذهبي رهنمايانو زيراثر په دوو ډلو کښې تقسيم شول. بيا هم دا يو حقيقت دې چه په پښتنو قبائيلو کښې د مغلو د اقتدار برخلاف د خپلې آزادۍ د حفاظت جذبه هم دې تحريک راپېدا کړه زولي وه. د قومي عصبيت دغه جذبه وه چه وروستو ئې ترقي اومونډله. او احمد شاه ابدالي ته ئې د پښتنو د يو سلطنت په قائمولو کښې لاره صفا کړه.

ښاغلې ,, کيرو ,, په خپل کتاب ,, دی پټهان ,, کښې د بايزيد د تحريک په باب کښې داسې وائي ,, بايزيد روښان خپل نوم ګلاند پرې ښود. اګرچه د يوسف زو په علاقه کښې د هغه تحريک برخلاف د قبائيلي مخالفت طوفان په زور و شور سره جاري وو. ولې ددې باوجود د هغه اخلاف ددې جوګه ووچه د پښتنو په عزيزو قبائيلو کښې په خپله مرسته يو داسې مظبوطه ډله اودروله چه د هغې په کومک ئې د خپلې آزادۍ جذبه ترمودو مودو قائمه اوساتله او په دې علاقه کښې ئې د اکبر و جهانګير قبضه ناممکنه کړه. او د ,, مستهرستته ,, دا وينا مبالغه نه ده چه هغه وخت چه کومه فرقه وارانه جذبات پاروولې شوې وو. اګرچه وروستو د هغې مذهبي رنګ و روغن تبديل يو قدرتي امر وو بيا هم د قبائيلو د آزادۍ په جذبه کښې د جوش و سرګرمۍ برقرارساتلو يو لوئې باعث وو. او هم ددې په وجه دا قبائيل د خپلې ازادۍ په حفاظت کښې کامياب دي.[۱] ,,

---

[۱] دی پټهان ص ۲۰۰

# د قندهار د پاره د مغلو او ایرانیانو جنګونه

د جهانګیر په عهد حکومت کښې د سرحدی پښتنو د جنګونو نه علاوه د مغل حکومت او ایرانیانو ترمینځ د قندهار د قبضې په باب کښې هم د جنګونو یو سلسله شروع شوی وه. چه د شاه جهان په عهد حکومت کښې هم جاری وه. او تر ډیرے مودے د قندهار د قبضې نه د دواړو حکومتونو زړونه نۀ صبریدل . د دے واقعاتو تفصیل په لنډه ډول داسې دے :-

د حسین بالقراء (په تیموری ټبر کښې د هرات اخری باچا) د وفات نه پس په کال ۱۵۲۲ء کښې بابر په قندهار قبضه اوکړه . د دغه وخت د قندهار حکمران شاه بیګ نومیدۀ چه د "ارغون" خوځ وو . او د بابر د لاسه سنده ته په تیښته مجبور شوے وو . بابر په کال ۱۵۳۰ء کښې وفات شو . او د دغۀ د وفات نه پس قندهار د مرزا کامران په حکومت کښې شامل وو . او د کامران د لوری نه مرزا عسکری د قندهار حکمران وو . په کال ۱۵۴۵ء کښې همایون د ایرانی فوځ په مرسته د مرزا کامران نه دا ښار فتح کړو . او بیرم خان ترکمان ئې د خپل لوری نه دلے حاکم مقرر کړو . د همایون او ایرانی بادشاه شاه طهماسپ ترمینځ دا لوظ شوے وو چه د هند د فتح نه پس به همایون قندهار ایرانی حکومت ته حواله کړی .

په کال ۱۵۵۵ء کښې همایون د هند د فتح په ټکل روان شو . او بیرم خان هم د دغۀ سره لاړ . او شاه محمد نوے یو سړے د بیرم خان د نائب په ډول د قندهار حاکم مقرر شو . همایون اګرچه د هند په فتح کولو کښې خو کامیاب شو ولے ډیر زر په کال ۱۵۵۶ء کښې وفات شو . او ایرانی حکومت ته د قندهار د سپارلو وعده د دغۀ په ژوند کښې پوره نۀ شوه . او قندهار هم هغه شان د مغل حکومت په قبضه کښې وو . او شاه محمد د دے ښار حاکم وو . په کال ۱۵۵۸ء کښې چه اکبر په هندوستان کښې د خپل سلطنت په استحکام و توسیع کښې مصروف وو . د زمینداور د علاقے حکمران په قندهار حمله اوکړه . د قندهار حاکم نۀ خو

د همغهٔ مقابله کولے شوه او نهٔ ئے د اکبر نه د کومک طمع وه۔ نو همغهٔ ایرانی دربار ته د همایون همغه وعده ورپه یاد کړه۔ او د همغوی نه ئے په دے شرط کومک اوغوښتلو چه د کامیابئ په صورت کښے به قندهار د همایون د وعدے په احترام کښے ایرانی حکومت ته حواله کړے شی۔ په دے وجه ایرانی حکومت د قندهار امداد ته فوځ را اولیږلو۔ او د دے فوځ په کومک قندهار د زمیندارو د محاصرے نه خلاص شو۔ ولے اوس شاه محمد د خپلے عهدے نه واوړیدو۔ او ایرانیانو ته ئے د قندهار په قبضے ورکولو کښے اغے بهانے شروع کړے۔ په دے خبره ایرانیانو قندهار محاصره کړو۔ اکبر چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو شاه محمد ته ئے زورنه اوکړه۔ او ورله ئے هدایت اوکړو چه د همایون د وعدے په احترام کښے دِ قندهار سمدستی ایرانی حکومت ته حواله کړے شی۔ شاه محمد هم دغه شان اوکړل۔ قندهار ئے ایرانیانو ته اوسپارلو۔ او په خپله هند ته راغے۔ او د دے نه (۱۵۵۸ء) پس د ۱۵۹۵ء پورے قندهار د ایرانیانو په قبضه کښے وو۔

چه قندهار د ایرانیانو په قبضه کښے راغلے نو په دے خبره پښتنو (غلجی او ابدالی قبائیلو) ډیره خوشحالی اوکړه۔ او د دے وجه دا وه چه د مغلو رویه او سلوک د پښتنو سره ښهٔ نهٔ وو۔ او د پښتنو دا خیال وو چه د مغلو په نسبت به د ایرانیانو سلوک د دوئ سره بهتر او شریفانه وی۔ ولے په ابتداء کښے ایرانیان هم د مغلو په چاله روان وو۔ د ایرانی حاکمانو سلوک د پښتنو په توقعا تو پخے اوبهٔ توئے کړے۔ او د دوئ د پاره دا تبدیلی صرف د ناټکانو تبدیلی ثابته شوه۔ ولے هرکله چه حالات د زغم نه بهر شول نو پښتنو د خپلو مشرانو یوه جرګه د خپلو شکایتونو پیش کولو په غرض اصفهان ته اولیږله۔ دے جرګے د بادشاه په خدمت کښے خپل شکایتونه پلیش کړل۔ د غه وخت کښے د ایران بادشاه شاه عباس اعظم وو۔ چه یو فراخدل، وسیع النظر او دوراندیش بادشاه وو۔ همغه چه د پښتنو په شکایتونو خبر شو نو د همغوی ټول شکایتونه ئے لرے کړل۔ او د پښتنو د معاملاتو د پاره ئے د پښتنو مشرانو نه ځنے سرداران د «کلانتر» په عهده مقرر کړل۔ او په اول وار د ابدالی قبیلے د کلانتر په عهده ملک سدو مقرر شو چه په ابدالی قبیله کښے د پوپلزو په څانګه کښے وو۔ او دا اول موقع ده چه په تاریخ کښے ابدالی قبیله په دے خپله نامه ذکر شوی ده۔ د «ملک سدو» په ذمه د همغه سړک د یوے حصے د حفاظت ذمه واری هم وه۔ کوم چه د ایران نه هرات ته او د هرات نه قندهار ته راغلے وو۔ په دے دول په ابدالی قبیله کښے د سدوزو په کورنئ کښے خانئ او ریاست بنیاد قائم

شو۔ او څه رنګ چه د اکبر د لوری نه ملک اکوړے د ختټکو د خانئ بانی ګرزیدلے وو۔ دغه رنګ د شاه عباس د لوری نه ملک سدو د سدوزو د خانئ بانی شو۔ د خټکو او ابدالیانو د خانئ زمانه یوه او د حکومت په باب کښے د دوئ ذمه وارئ بیدو یو شان دی۔ صرف دومره فرق دے چه خټک د مغلو پرورده وو او ابدالیان د ایرانیانو۔

د قندهار صوبه د ۱۵۹۵ء پورے په ایرانی سلطنت کښے شامله وه۔ دغه وخت کښے اکبر په هندوستان کښے خپل سلطنت مستحکم کړے او د خپلے لارے هر خنډ ئے لرے کړے وو۔ د هغهٔ په زړهٔ کښے اوس د قندهار د قبضے تلوسه پیدا شوی وه۔ او د قندهار په حقله ئے سیاسی چالونه شروع کړی وو۔ په دغه ورځو کښے د ایرانی حکومت له خوا د قندهار حاکم شهزاده مظفر نومیدهٔ۔ د اکبر په سازش په یو لور د شهزاده مظفر د مقابلے د پاره اوزبک او پاروله شول۔ او په بل لور د هغهٔ په زړهٔ کښے د ایرانی دربار له خوا د هغهٔ په حق کښے خطرات او وسواسونه پیدا کړے شول۔ دا سازش د هغه شاه بیګ په ذریعه سرته اورسیدهٔ۔ چه ذکر ئے وړاندے شوے دے۔ د دے نتیجه دا شوه چه مرزا مظفر د اکبر په دربار کښے سیاسی پناه واخسته۔ او قندهار ئے اکبر ته اوسپارلو۔ اکبر هم دغه شاه بیګ د قندهار حاکم مقرر کړو۔

دا شاه بیګ په اصل کښے د کابل وو۔ او د مرزا حکیم په زمانه کښے د هغهٔ د لوری نه د پیښور حاکم وو۔ دیو لوئے سازشی دماغ خاوند وو۔ د اکبر په زمانه کښے هم څه موده د پیښور حاکم وو۔ او د پښتنو په جنګونو کښے ئے لوئے نوم او شهرت ګټلے وو۔ وائی چه په کومو ورځو کښے دے د پیښور حاکم وو۔ په دغه ورځو کښے د ملک اکوړی د لاسه د دهٔ ورور اووژلے شو۔ د ملک اکوړی قبیله په دے خبره ډیره اووېریدله۔ د هغوی سره د شاه بیګ د ځنو فناک انتقام خطره پیدا شوه۔ او ملک اکوړے ئے په دے خبره ډیر ملامته کړو۔ ملک اکوړی چه دا حال اولید نو پړے په غاړه اووا ښهٔ په ځله شاه بیګ ته په ننواتے لاړ۔ او د هغهٔ په مخکښے ئے د خپل قصور اعتراف اوکړو۔ او وے وئیل چه زما د لاس نه ستا ورور وژلے شوے دے۔ اوس زهٔ تاله راغلے یم۔ هرڅه چه ستا خوښه وی زهٔ په هغے رضا یم۔ شاه بیګ ورته اووے چه زهٔ په دے حال کښے د ستا نه بدل نهٔ اخلم۔ تهٔ د قام قبیلے خاوند ئے۔ لاړ شه او په خپله قبیله کښے کښینه۔ زهٔ به په جنګ درشم۔ او هغه وخت چه ے څه د لاس نه اوشو نو هغه به زما د ورور بدل وی۔ د دے نه پس ملک اکوړے خپلے قبیلے ته راغے۔ او خپل قام ئے د حالاتو نه خبر کړو۔ د قبیلے

خلق هم د هغهٔ په تنګ اودریدل - شاه بېګ دخټکو جنګ ته راغۍ - جنګ اوشو - د طرفینو نه خلق اومړل - ولې خټک ئې دخپلې علاقې نه بې ځایه نهٔ کړې شول.

کوم وخت چه شاه بېګ د قندهار حاکم شو نو ددې علاقې انتظام ئې په ډېرې خوبۍ اوکړو - په کومو ورځو کښې چه جلال الدین په غزنی حمله اوکړه - او دهغې په وجه د غزنی حاکم شریف خان اوتښتیدهٔ نو دغزنی علاقه هم د شاه بېګ په حکومت کښې شامله کړې شوه - او د اکبر د وفات په ورځو کښې شاه بېګ د قندهار او غزنی دواړو صوبو حاکم وو - د جهانګیر په وخت کښې د شاه بېګ اقتدار نور هم زیات شو - په کال سنهٔ ۱۶۰۷ع کښې جهانګیر د کابل صوبه هم شاه بېګ ته حواله کړه - او په قندهار کښې ئې تردی بېګ نومې یو سړې حاکم مقرر کړو - او ورله ئې د « سردار خان » خطاب ورکړو - په کال سنهٔ ۱۶۰۸ع کښې د جهانګیر د لورې نه شاه بېګ ته د « خان دوران » خطاب ورکړې شو - دغه وخت هغه د کابل، غزنی او قندهار واښراغۍ وو - او د سنهٔ ۱۶۲۰ع پورې په دې خپله عهده قائم وو -

په کومه طریقه چه مغلو په قندهار قبضه کړی وه - د شاه عباس د زړهٔ نه دهغې ارمان نهٔ وتلو - او هغه د قندهار د دوباره قبضې د پاره موزونې موقع ته لیواله وو - چنانچه په سنهٔ ۱۶۲۲ع کښې هغهٔ د یو لوئې فوځ سره په قندهار حمله اوکړه - دغه وخت د قندهار ګورنر اشرف خان وو - اشرف خان د جهانګیر نه د ایرانیانو د حملې برخلاف د فوځ کومک خواست اوکړو - په دغه ورځو کښې د جهانګیر مشهور جرنیل خان جهان لودی د ملتان ګورنر وو - او هغه د اشرف خان مدد ته سمدستی تیار وو - ولې جهانګیر هغه د تلو نه منع کړو - او ورته ئې اولیکل چه « د بادشاهانو مقابلې ته بادشاهان په خپله ځی -» په اصل کښې خبره دا سې وه چه نور جهان بېګم د خپل زوم شهریار په مقابله کښې د شاه جهان نه خطره لرله - دغه وجه وه چه هغې جهانګیر ته دا خبره ورمخکښې کړه - چه د بادشاه د مقابلې ته بادشاه ځی - په دې کښې دهغې دا غرض وو چه د قندهار د کومک د پاره شهزاده خرم اولیږلې شی - غرض ئې دا وو چه دغه شان به شاه جهان د مرکز نه لرې لاړ شی اوکه چرې په مهم کښې ناکام شی - نو د هغهٔ په شهرت کښې به کمې راشی - ولې په بل لور شاه جهان هم د نور جهان په نیت پوه وو - نو هغهٔ هم د ې بهانې شروع کړې - او نتیجه دا شوه چه د قندهار امداد ته په وخت فوځ اونهٔ شو لیږلې - او قندهار د ایرانیانو په قبضه کښې راغې - او د سنهٔ ۱۶۲۳ع نه پس مغلو هډو د

قندهار سودا پرے شودله.

جهانګير په سنه ۱۶۲۷ کښے وفات شو او د هغه نه دوه کاله پس په سنه ۱۶۲۹ کښے شاه عباس اعظم هم وفات شو. د دهلي په تخت شاه جهان او د اصفهان په تخت شاه صفي کښيناست. شاه صفي يو ظالم، بے پروا حريص او زر پرست بادشاه وو. او دهر دولتمند سړي دولت ته به ښخيدلو. د ده په وخت کښے د قندهار ګورنر علي مردان خان نومے يو سړے وو. چه ډير دولتمند وو. شاه صفي د ده دولت ته سترګے خړے کړے او اصفهان ته ئے اوبللو. ولے علي مردان خان د دے دعوت په مطلب پوه وو. د ده نه وړاندے چه کوم دولت مند خلق اصفهان ته بللي شوي وو. په هغوي بيا د دنيا باد نه وو لګيدلے. علي مردان خان ته هم خپل انجام معلوم وو. نو هغه اصفهان ته د تلو په ځائے په چپه خُله د شاه جهان سره سازش اوکړو. قندهار ئے مغلو ته حواله کړو. (سنه ۱۶۳۸ع) او په خپله دهلي ته راغے. شاه جهان د هغه ډير قدر اوکړو. او هغه ئے د هغه فوځونو سالار اوټاکلو کوم چه د بدخشان د مهم په غرض مرتب شوے وو.

قندهار چه د مغلو لاس ته راغے نو د غه وخت مغل حکومت ته د پښتنو په باب د خپلے غلطے پاليسئ خرابے نتيجے ښکاره شوے وے. نو شاه جهان د دے ختمے زبردست کوشش اوکړو. چه د قندهار د علاقے په پښتنو کښے بالخصوص په ابدالي قبيله کښے خپل ځان له ډله پيدا کړي. او هغه په دے کوشش کښے تر څه حده کامياب هم شو. د سدو زو په ټپه کښے ځنے داسے خلق وو چه هغوي د ملک سدو د کورنئ نه مخالف وو. دا خلق او د علي زو ټوله ځانګه د مغلو ملګري شوه. دے خلقو د قندهار په جنګونو کښے د مغل حکومت قابل قدر مدد اوکړو.

لکه چه وړاندے وئيلے شوي دي د شاه جهان د حکومت په ابتدا کښے د روښنائي تحريک قائد عبدالقادر مړ شوے او د بايزيد د کورنئ نورافزاد د حکومت سره د مصالحت په وجه هند ته ليږلے شوي وو. او د غه شان روښنائي تحريک عملاً ختم شوے وو. اګرچه افريدي او اورکزي د خپلو دوو مشرانو ملک تور اورکزي او ازادمير افرېدي په ماتحتئ کښے تر ډيرے مودے د مغل حکومت په سرګرم مخالفت کښے لګيا وو. او د دے دوارو مشرانو د خپلو کارنامو په وجه په اولس کښے ډير شهرت حاصل کړے وو. چنانچه د دوئ کارنامے به تر ډيرے مودے په اولسي سندرو کښے ستائيلے شوے. ليکن په مجموعي

حیثیت سره د شاه جهان په زمانه کښې د وادئ پېښور پښتانهٔ په قلا روو. او په دې علاقه کښې د خټکو او یوسف زو د جنګونو نه علاوه نور جنګونه نهٔ وو. د خټکو او یوسف زو مخالفت د اکبر د زمانې نه شروع شوې وو.

د خټک قبیلې د سیاسي شهرت اغاز د سنه ۱۵۸۶ء نه شوې وو. په دغه کال د اکبر د لورې نه ملک اکوړی ته د اټک او پېښور ترمینځه د شاهراه حفاظت ور په غاړه شوې وو. او د دې وخت نه د خټکو او یوسف زو مخالفت هم شروع شوې وو. ولې چه یوسف زی د حکومت نه روګردان او خټک د حکومت په مرسته ولاړ وو. د ملک اکوړی د وفات نه پس د خټکو خانی د هغهٔ ځوی یحیٰ خان ته اورسیده. د یحیٰ خان په وخت کښې هم د دې دواړو قبیلو تعلقات په زاړهٔ دستور خراب وو. بلکه په دې کښې نور شدت هم پیدا شوې وو. د یحیٰ خان نه پس د هغهٔ ځوئ شهباز خان د خټکو سردار شو. شهباز خان په کال سنه ۱۰۰۰ هـ / ۱۵۹۰-۹۱ء کښې زیږیدلے وو. د شهباز خان په وخت کښې د یوسف زو او خټکو په دشمنۍ کښې ډیر زیاتے اوشو. په کال سنه ۱۰۵۰ هـ / ۱۶۴۱ء کښې د منډنو او خټکو ترمینځه په یو جنګ کښې شهباز خان ډیر بد ژوبل شو. او د دې زخمونو نه وفات شو. د شهباز خان د وفات نه پس د هغهٔ ځوئ خوشحال خان خټک د خټکو سردار شو.

خوشحال خان په کال سنه ۱۰۲۲ هـ / ۱۶۱۳ء کښې زیږیدلے وو. او د سردارۍ په منصب د مقرر کیدلو په وخت کښې د اَتهٔ ویشت کالو وو. نوموړے هم د تورې خاوند وو او هم د قلم. د دغه وجه وه چه د خپلو ادبي او سیاسي کارنامو له کبله د پښتنو د تاریخ په یو خاص دور کښې د عروج انتها ته اوبیا د مایوسۍ ژورو ته هم اورسید. ولې د خپلو علمي او ادبي اثارو او سیاسي کارنامو په برکت ورله په هر دور کښې درونډ کتلے شول. او کتلے شي. د سردارۍ په منصب د مقرریدلو نه لږه موده پس خوشحال خان ته د شاهي خدماتو د اداکولو په لړکښې د کانګړے او بدخشان په مهماتو کښې د شمولیت موقع هم په لاس ورغلے. د کانګړے په مهم کښې خوشحال خان د خپل یو دوست او محسن اصالت خان (چه د شاه جهان په امیرانو کښې د لوئ پائے امیر ور.) په زریعه شامل شوے او د تاراګړه د مورچې په تسخیر مقرر شوے وو. په دے مهم کښې خوشحال خان د غیر معمولي شجاعت مظاهره کړې وه. او شاه جهان هم د دے خدماتو ډیر قدر کړے وو.

دمغلو او ایرانیانو ترمینځه د جنګ څرګه د قندهار قبضه وه - په کال ۱۰۵۲ھ (۱۶۴۱-۴۲) کښې په قندهار باندې د شاه صفي د حملې کنګوسه خوره شوه - او شاه جهان د دغه د مقابلې په غرض په خپله راروان وو - ولې دا مهم د شهزاده دارا شکوه په خواهش و درخواست شهزاده ته حواله شو - شهزاده دارا شکوه د یو لوئې لښکر سره د قندهار د مهم په غرض د لاهور نه راروان شو - په دې موقع دکوهاټ په ضلع کښې د رسیځ په مقام خوشحال خان هم د شهزاده په خدمت کښې د سلام په غرض حاضر شو - لیکن په ځائې د دې چه شهزاده دخوشحال خان حوصله افزائي کړې وې هغه دخوشحال خان دجاګیر نه څه علاقه لرې کړه او دا ډیره ممکنه ده چه په دې خبره به د خوشحال خان په زړه کښې د دارا شکوه په حقله څه خیرې پیدا شوې وي - د قندهار دا مهم په دې وجه سر ته او نۀ رسید چه شاه صفي د مشهد په مقام وفات شو - او دغه شان په قندهار باندې د ایرانیانو حمله په دې موقع پاتې شوه -

په دغه ورځو کښې په بلخ او بدخشان کښې د نذر محمد خان والی توران او د هغۀ دځامنو دکورنۍ مخالفت په وجه ډیره بد امني وه - او شاه جهان د دې علاقو تسخیر ته ډیر لیواله وو - چنانچه په کال ۱۶۴۵ء کښې شاه جهان خپل یو امیر "اصالت خان" په دې غرض کابل ته اولیږلو چه د امیرالامراء علي مردان خان په مشوره د دې مهم د پاره ضروري انتظامات ترسره کړي - په دې مهم کښې خوشحال خان هم د اصالت خان ملګرې وو - او څه رنګ چه هغۀ د تاراګړه په محاذ خپله مردانګي ظاهره کړې وه - دغه شان ئې په دې مهم کښې د هزاره او اوزبکو سره شدیدې مقابلې اوکړې - او په هغې کښې کامیاب شو - دا مهم د ابتدائي نوعیت وو - او هرکله چه اصالت خان د ضروري انتظاماتو د تکمیل نه پس د بادشاه په خدمت کښې لاهور ته راتلو نو د اصالت خان په وینا خوشحال خان هم لاهور ته راغې - او د بادشاه په خدمت کښې حاضر شو - او بادشاه هغه ښۀ اونمانځلو -

بل کال (۱۶۴۶ء) د بدخشان و بلخ باقاعده مهم شروع شو - او دا ذمه واري شهزاده مراد ته ورپه غاړه شوه - په دې مهم کښې د پښتنو قبائیلو اکثر مشران د خپلو قبائیلي لښکرو سره شامل شوي وو - خوشحال خان ته هم د یو زر سورو او پیادو د پاره وئیلې شوي وو - د تیارۍ نه پس یو عظیم فوځ د شهزاده مراد په کمان کښې روان شو - په دې فوځو نو کښې د خوشحال خان د محسن اصالت خان نه علاوه یو بل دوست "بهادر خان" چه ذکرئې څو ځله وړاندې شوې دې هم شامل وو - نوموړې د شاه جهان یو

ډیر مخلص او جانثار امیر وو. او د خوشحال خان هم ښهٔ دوست وو. د دے فوځ په کومک شهزاده مراد په خپل مقصد کښے کامیاب شو. بدخشان فتح شو او بلخ او افغانی ترکستان هم اطاعت اومانهٔ. دا دواړه صوبے په مغل سلطنت کښے شاملے کړے شوے او شهزاده مراد د دے صوبو واشراځ او تاکلے شو. ولے شهزاده مراد لا خپل ځان ښهٔ محکم کړے نهٔ وو چه اوزبکیانو بیا داړے شروع کړے. او په دے داړو او حملو شهزاده دا سے وارخطا شو چه په خپل ځائے ئے خلیل الله خان نومے یو امیر پرے ښود. او په خپله د بادشاه د اجازت نه بغیر کابل ته راغے. شاه جهان د مراد په دے رویه ناراض شو او هغه ئے د دے عهدے نه معزول کړو. او د بلخ په صوبه دارئ ئے "بهادر خان" مقرر کړو.

د مراد بخښی د معزولئ نه پس د بلخ و بدخشان مهم اورنګ زیب ته حواله شو. اورنګ زیب هم د بلخ و بدخشان په تسخیر کښے کامیاب شو. ولے هغه هم اوزبکیانو په قلار پرے نهٔ ښود. اخر دا مهم دا سے ختم شو چه بلخ دوباره اوزبک سردار نذر محمد خان ته حواله شو. او اورنګ زیب د خپلو فوځونو سره کابل ته راروان شو. په لاره کښے د موسم سختیئو او د اوزبکو داړو د اورنګ زیب فوځ ډیر اوتړنولو. او هغه په ډیر بد حال کښے کابل ته رااورسید. خوشحال خان د دے نه وړاندے د اصالت خان او بهادر خان سره واپس شوے وو. د دے مهم په دوران کښے د خوشحال خان دوست او "محسن" اصالت خان" د خلو پینځو کالو په عمر کښے وفات شو. (سنه ۱۶۴۷ع) د بلخ و بدخشان په دے مهم کښے بهادر خان ډیر ګټلے نده کارنامے سر ته رسولی دی. ولے ځینو حاسدینو د بادشاه په زړهٔ کښے د بهادر خان په حقله هم غلط فهمئ پیدا کړے. او شاه جهان د بهادر خان جاګیر ضبط کړو.

لکه چه مو وړاندے وئیلی دی د قندهار د قبضے نه د ایرانیانو زړهٔ نهٔ صبریدلو. د شاه صفی په وفات د هغهٔ دویم ځوی د شاه عباس ثانی په نامه د ایران حکمران شوے وو. دا ځلمے شهزاده د ډیرو ساهو خویونو خاوند وو. او د قندهار فتح ته لیوّله وو. او په دے غرض ئے د قندهار د حملے د پاره په چپه خُلے تیارئ شروع کړی وے. اخر چه خپلے تیارئ ئے مکملے کړے نو د سنه ۱۶۴۸ع په اخر کښے د قندهار د حملے په نیت راروان شو. ایرانیانو د حملے د پاره دا سے وخت خوښ کړے وو چه د هندوستان او قندهار ترمینځه لارے په واورو بندے وی. د شاه عباس ثانی له خوا په قندهار باندے دا حمله د شاه جهان د پاره یو لویه تازیانه وه. چنانچه هغهٔ سمدستی اورنګ

زیب ته چه په دغه ورځو کښې د ملتان گورنر وو- د قندهار د مدافعت تاکید ی احکام
اولیږل- د دې حکم په تعمیل کښې اورنګ زیب فوراً د ملتان نه د قندهار په لور روان
شو- شاه جهان د لاهور نه یو بل فوځ هم د وزیر سعد الله خان په ماتحتۍ کښې د
قندهار امداد ته اولیږلو- ولې د دې فوځونو د رسیدو نه اول ایرانیانو په قندهار
قبضه کړې وه- د دې باوجود شاه جهان اورنګزیب ته د قندهار د محاصرې حکم اولیږلو.
او مغل فوځونو قندهار محاصره کړو- هسې په سرخو مغل فوځ پنځوس زره وو- ولې
د قلعې د ماتولو سامان ورسره ډیر کم وو- او په مقابله کښې ایرانی فوځ د محاصرینو په
مدافعت کښې ډیر ماهر او د هغوی وسلې هم د مغلو نه بهترې وې- دغه وجه وه چه
د اورنګزیب د انتهائی کوشش باوجود هم قندهار فتحه نهٔ شو- او د ژمې موسم په
سر راغلو- د دې نتیجه دا شوه چه اورنګ زیب ناکامیاب بیرته لاړ او د دوباره حملې
په تیاریانو کښې په سرگرمۍ لګیا شو- (سنه ۱۶۴۹ء) -

د قندهار په دې مهم کښې د اورنګ زیب په ماتحتۍ کښې د نورو امیرانو نه
علاوه هغه بهادر خان هم مقرر شوې وو چه ذکرئې پورته شوې دې- دا بهادر
خان د خوشحال خان ډیر دوست وو- او چه قندهار ته تلو نو چه په اټک راپورې
شو نو خوشحال خان ورله ډوډۍ اوکړه- او بیا د خوشحال خان په مشرتیا کښې د
حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحبؒ د سلام په غرض د هغهٔ کلی زیارت کاکا صاحب ته
راغ- او د شیخ رحمکار په خدمت کښې ئې د دې زره روپۍ د نظر په ډول پیش کړې
او بیا ئې ورنه خواست اوکړو چه یا حضرت زما په حق کښې د بادشاهۍ دعا اوکړئ.
او د خروج اجازت راکړئ- حضرت شیخ رحمکار د مراقبې نه پس هغهٔ ته اووې چه
"بادشاه کوم وخت ستا په لور گوری نو تهٔ هغهٔ ته نیغ گورې او که سترګې دې ښکته
نیولی وی؟" بهادر خان ورله اووې چه ښکته- د دې په جواب کښې شیخ رحمکار
اوفرمائیل چه "ښه ده چه بیرته راشې نو بیا به جواب درکړم-" افضل خان وائی چه
د دې خبرې نه د حضرت مراد د حق نمک د لحاظ ساتلو په لور اشاره وه-

د شاه جهان د پاره د بهادر خان د خدماتو او د دې خدماتو په بدل کښې د شاه
جهان د لورې نه د بهادر خان سره د سلوک ذکر وړاندې په تفصیل سره شوې دې-
د دې په رڼا کښې به دا وئیل نامناسب نهٔ وی چه بهادر خان په حمله اراده کښې حق
به جانب وو- ولې هغه د دې مهم په دوران کښې وفات شو- او دغه شان په

مغل حکومت کښې خوشحال خان د يو بل مخلص دوست د امداد نه هم محرومه شو.

لکه چه وړاندې وئيلې شوې دي په ابدالي پښتنو کښې څنې خلق د مغلو طرفدار وو- د دې خلقو په مرسته اورنګ زيب د قندهار د علاقې نه واقفيت حاصل کړو- او د بلې حملې د پاره د قلعه شکن توپونو او نورو وسلو په تيارئ کښې لګيا شو- او پوره درې کاله پس په ۱۶۵۳ء کښې دوباره د قندهار د تسخير په نيت د ملتان نه روان شو- داځل هم د لاهور نه شاه جهان يو خاص فوځ د سعد الله خان وزيراعظم په ماتحتئ کښې د قندهار په لور اوليږلو- ولې په حقيقت کښې ټول اختيارات شاه جهان په خپل لاس کښې ساتلي وو- او د کابل نه به ئې سعد الله خان ته هدايات ليږل- او د دې هدايتو په رڼا کښې به اورنګ زيب فوځي کاروائي کوله- دا يو داسې کار وو چه اورنګ زيب ته ئې د ازادانه فيصلې او خپل جنګي قابليت استعمالولو موقع محدوده کړې وه- او د دې نتيجه دا شوه چه د اورنګ زيب دا دوئمه حمله هم ناکامياب شوه-

د قندهار په دې جنګونو کښې د ابدالي قبيلې هغه خلق (علي زي او څه سدوزي) چه د مغلو په مرسته ولاړ او په ډير اخلاص و بهادرئ جنګيدلي وو- ولې چه اورنګ زيب په دويم ځل هم د قندهار په فتح کولو کښې کامياب نۀ شو- نو دوئ د قندهار نه او تښتيدل او د اورنګ زيب په فوځونو کښې شامل شول- اورنګزيب د دې ناکامئ په وجه دکن ته اوليږلې شو- او دامهم د دارا شکوه په درخواست او خواهش هغۀ ته حواله شو-

په دويم ځل چه اورنګ زيب په کال ۱۶۵۲ء کښې په قندهار حمله کوله نو دمهم د انتظام او نګرانئ په غرض شاه جهان په خپله هم کابل ته راغلې وو- په دې موقع چه شاه جهان په اباسينده را پورې وتو نو خوشحال خان د هغۀ استقبال اوکړو- او د ډکې پورې د بادشاه په ملګرتيا کښې لاړ- د دې ملاقات په وخت کښې بادشاه د خوشحال خان نه څه تپوسونه هم اوکړل- چه په هغو کښې يو دا هم وو چه خوشحال خان ولې د يوسف زو سره جنګونه کوي؟- د دې په جواب کښې خوشحال خان دا او وئيل چه يوسف زي د حکومت نه روګردانه او هغه (خوشحال خان) د حکومت وفادار دې نو د يوسف زو سره د هغۀ دا جنګونه د حکومت د وفادارئ په لړ کښې روان دي- د بادشاه د دې پوښتنې نه دا ګمان کيدې شي چه شايد د هغۀ په خيال کښې به د يوسف زو او خوشحال خان دا جنګونه په ذاتي مخالفت مبني معلوميدل- او څکه به ئې دا قسم پوښتنه کړې وي- په دې شک څنشته چه د دې دواړو قبيلو ترمينځه

مخالفت ترڅه حده خو په ذاتي وجوهاتو مبني وو ـ ځکه چه خټکو به د یوسف زو په علاقه کښې د قبضې په غرض دست اندازي کوله ـ او تر دې حده دا مخالفت په ذاتي وجوهاتو مبني کیدے شي . لیکن د دې نه علاوه د دې مخالفت غټه وجه دا وه چه خوشحال خان پلار په نیکهٔ د مغلو جاګیردار او وفادار وو ـ او کوم اقتدار چه دغهٔ موندلے وو هغه د حکومت سره د وفادارۍ او مرستې برکت وو ـ او دا فطري امر وو چه خوشحال خان به ضرور دا خواهش لرلو چه خپل اقتدار نور هم زیات کړي ـ چونکه یوسف زي د حکومت مخالف وو نو د خوشحال خان مقصد د دوئ سره په جنګونو کښې حاصلید لے شو ـ دغه وجه وه چه د خټکو او یوسف زو ترمینځه په یو مخه جنګو نه روان وو ـ

په دے موقع بادشاه د خوشحال خان نه د یوسف زو د علاقے ، د هغوی د دودونو دستورونو او د هغوی د سردارانو او د دے سردارانو د فوځي طاقت په باب کښې هم پوښتنے اوکړے ـ د دے په جواب کښې خوشحال خان اووئیل چه د عزیزے علاقے د یوسف زو سرداران کاچے ، حمید او کاچو نومیږي ـ او د میداني علاقے د یوسف زو سرداران حبیب ، باکو او ظریف دي ـ او د دوئ طاقت په پنځه پنځه سوه سورو او پنځه پنځه زره پیادو پورے رسیدے شي ـ بادشاه د خوشحال خان نه د هغه خټکو په باب کښې هم پوښتنه اوکړه کوم چه دا باسیند نه پورے په نمر خاتهٔ آباد دي ـ او هغوی به د شاه پور په ضلع کښې په « بهیره او خوشاب » میلے کولے ـ او ټوله علاقه د دوئ د تاختونو د لاسه تباه وه ـ ولے د خوشحال خان د سردارۍ په وخت کښې د دوئ تاختونه بند شوي وو ـ بادشاه دا تپوس اوکړو چه د دے خټکو سره د خوشحال خان څه تعلق وو؟ د دے په جواب کښې خوشحال خان اووئیل چه د هغوی سره خو زما نور څه تعلق نهٔ وو ـ البته زهٔ هم خټک یم او هغوی هم خټک دي ـ او د غه د قبیلے او عزیزولۍ اشتراک دے ـ د دے نه پس بادشاه هغه د ډکے نه رخصت کړو ـ او ورته ئے هدایت اوکړو چه هغه دِ د اټک په ګودر بنجاریان (غله فروش ) راتیر کړي ـ او بادشاه پسے دِ ئے کابل ته اولیږي ـ

چه بادشاه کابل ته اورسید نو خوشحال خان هم کابل ته ورغے او د دے وجه دا وه چه په دغه ورځو کښې د یوسف زو د یو سردار ( بهاکو خان ) ځوی د مغل حکومت ملازمت اختیار کړے وو ـ او د میر بخشي په ملازمانو کښې شامل شوے وو ـ او د بهاکو خان یو بل رقیب « حبیب خان » د هغهٔ سره د بغض و حسد په بنا په خوا او شا علاقو کښې بد امني پیدا کړي وه ـ د دے واقعاتو په بنا د میر بخشي په سفارش د یوسف زو څه علاقه د خوشحال خان

جاګیر او انتظام کښے ورکړے شوه- ولے دا علاقه څه لږه موده پس د دارا شکوه په وینا د خوشحال خان نه بیا واخستلے شوه- دا واقعات په لنډ ډول داسے وو:-

د یوسف زو سردار " بهاکو خان " په خصوصیت سره د خوشحال خان مخالف وو. او د دوئ ترمینځه شدید رقابت وو- خوشحال خان د مغل حکومت د مرستے په وجه ډیر اقتدار حاصل کړے وو- بهاکو خان هم دا غوره اوګڼله چه که د حکومت د مرستے

د حصول په غرض د حکومت برائے نام اطاعت اومنلے شي نو په دے کښے به څه بدی نۀ وی- چنانچه هم په دے نقطه نګاه هغه د دهلی ته لاړ- او د شهزاده دارا شکوه په مرسته حاصلولو کښے کامیاب شو- د دے نه وړاندے بهاکو خان ځوئے د مکومت ملازمت اختیار کړے وو- چونکه په شاه جهان باندے د دارا شکوه ډیر اثر وو- نو شاه جهان اګرچه د خوشحال خان د انتظام نه خوشحال وو- ولے د دارا شکوه په وینائے دا نوی علاقه د هغۀ د جاګیر نه لرےکړه او بهاکو خان ته ئے په خپله علاقه کښے د د هړت وصولولو حق هم ورکړو- د خوشحال خان په حق کښے د دارا شکوه دلاسه دا دویمه بدی وه- د دے نه پس د خټکو او یوسف زو په مخالفت کښے د مغل دربار سازشونه هم ورګډ شول-

دا خبره هم د یادولوده چه اوس او د دے علاقے یو لیکوال ښاغلی الله بخش یوسفی صاحب په خپل کتاب یوسف زی افغان کښے د شاه جهان او یوسف زو د تعلقاتو په باب کښے لیکلی دی- چه " یوسف زو د شاه جهان دستار بندی کړی وه- او هغه ئے په اعزازی ډول په خپله قبیله کښے شامل کړے وو-" دا یو داسے بے بنیاده خبره ده چه نۀ خو د شاه جهان د عهد مؤرخین د دے تصدیق کوی- او نۀ د دغه زمانے د پښتنو د خپلو مؤرخینو په کتابونو کښے د دے په حقله څه شهادت موندلے شي- د یوسف زو او مغلو تعلقات د اکبر د زمانے نه کشیده وو- د پښتنو په باب کښے د اکبر او شاه جهان په پالیسئ کښے څه نمایاں فرق نۀ وو- البته دومره خبره ضرور وه چه اکبر به د پښتنو سره په هره موقع زور ازمائی کوله- او شاه جهان به د حالاتو د مناسبت او تقاضو په رڼا کښے محض د سیاسی ضروریاتو په بنا د پښتنو سره رسمی رواداری ساتله- دا هم درست ده چه د یوسف زو یو سردار بهاکو خان د دارا شکوه د مرستے په حصول کښے کامیاب شوے او د هغۀ په سفارش بهاکو خان ته په خپله علاقه کښے د دهړت وصولولو حق ورکړے شوے وو- ولے د دے مطلب هرګز دا نۀ شي کیدے چه د شاه جهان او یوسف زو تعلقات دومره په مینه او اخلاص مبنی وو چه یوسف زو د هغۀ دستار بندی کړی وه- د دستار بندئ سوال خو به هله پیدا کیدو

چه که چرے یوسف زی د مغل حکومت د ابتداء نه د اسے وفادار او اطاعت گذار وی۔ چه د مغلو د ھرے پلے ملګری وے۔ او د مغل حکومت په مقابله کښے دومره طاقتور وے چه مغل حکومت هم د ھغوی د دوستۍ حصول ته لیواله وے۔ ولے دا دواړه خبرے نهٔ وے۔ بلکه د شاه جهان پالیسی د پښتنو په باب کښے په تعصب او جانبدارۍ مبنی وه۔ او دا محض سیاسی ضروریات وو۔ چه شاه جهان به کله خوشحال خان په شا ټپولو او کله کله به ئے بهاکو خان ته هم شاباسے اووے۔ دا خبره هم د فکر وړ ده چه مغلو به په قای حیثیت څه رنګ پښتنو ته کتل۔ د ھغ په رڼا کښے ھڅو د دے خبرے سوال نهٔ شی پیدا کیدے۔ د غه شان یو غلط بیانی دے بناغلی لیکوال د شیرشاه په باب کښے هم کړی ده۔

د قندهار د دے دواړو مهمونو د ناکامیابیدلو غټه وجه دا وه چه د دارا شکوه په سازش د شاه جهان له خوا په اورنګ زیب باندے ډیرے پابندۍ لګیدلی وے۔ او د حملے په دوران کښے ھغهٔ خپل اختیارات په ازادانه طریقه نهٔ شو استعمالولے۔ او نهٔ به ئے په خپله مرضۍ د جنګ نقشه مرتب کولے شوه۔ د غه وجه وه چه اورنګ زیب ته د خپلو صلاحیتونو د استعمال موقعه حاصله نهٔ وه۔ د دے نه علاوه د مغل فوځ سره چه کوم توپونه وو د ھغه د قلا د فصیل د ماتولولو د پاره موزونے نهٔ وے۔ د مهم په دے ناکامیابۍ شاه جهان ډیر قهر واخست۔ او ھغهٔ دا اووئیل چه موږ د قندهار نه اوریدونکی نه یو۔ او دا مهم به خوا مخواه کامیابه وو۔ چنانچه د دے نه پس دا مهم دارا شکوه ته حواله شو۔

دارا شکوه د ډیرو تلوسو او د یو عظیم فوځ سره چه په ډیر ساز او سامان اراسته وو۔ د کامیابۍ په تلوسه کښے د قندهار په مهم روان شو۔ ولے په دارا کښے د اورنګ زیب په شان یو صفت هم نهٔ وو۔ د یو کال د ناکامے محاصرے نه پس په ډیر بد حال د قندهار نه راروان شو۔ په واپسۍ کښے د دارا فوځونه د غلجی پښتنو د لاسه ډیر او تر نیدل۔ او دارا شکوه د یو معمولی فوځ سره په بده ورځ کابل ته رااورسید۔ (۱۶۵۳ء)۔ د غه شان قندهار د مغلو د لاسه د همیش د پاره اووت۔ او د دے نه پس ھغه پښتانهٔ چه د مغلو په مرسته ولاړ وو۔ د ایرانی حکومت په اطاعت اماده نهٔ شول۔ او د خپل وطن نه ئے هجرت اوکړو۔ د ملتان علاقے ته راغلل۔ اورنګزیب د خپل حکومت په زمانه کښے د دے پښتنو د ھغه وفادارۍ او خدماتو ډیر قدر اوکړو۔ کوم چه د دے خلقو د قندهار په مهماتو کښے د ھغهٔ سره کړی وو۔ د دے خلقو نور متعلقین وروستو په ملتان کښے استوګن شول۔ دا خلق وروستو

په «ملتاني پښتنو» مشهور شول ـ اورنګ زیب به په خپل حکومت کښې دوئ ته په درنه سترګه کتل ـ او دغه نه پس هم دا خلق د عزت خاوندان وو ـ د ملتان او ډیره جاتو ګورنرې به د دے خلقو سره متعلق وه ـ د دوئ دا حیثیت د نولسمې صدئ پورے یعنې تر هغه وخته قائم وو ترکومه چه په ملتان او ډیره جاتو د سیکانو قبضه نۀ وه راغلې ـ د دے پښتنو اخلاف نن ورځ هم په حکومت پاکستان کښې د ممتاز حیثیت خاوندان دي ـ

په کال ۱۶۵۳ء / ۱۰۶۳ھ کښې د پښتنو نخوا لوئ ولي قطب الاقطاب حضرت شیخ رحمکار صاحب د جمع په ورځ په ۲۴ رجب د اتیاؤ کالو په عمر کښې په حق اورسید ـ او هم په دغه ورځ د ماز ګیر په وخت کښې قبر ته او سپارلے شو ـ د شیخ رحمکار د وفات په حقله خوشحال خان خټک دا رباعي وئیلې ده ـ ے

چو رفت از جهان شیخ دین رحمکار رجب بود جمعه به سه و سه هفت
چو تاریخ فوتش به جُستم ز عقل خرد گفت با ما که با فقر رفت

د حضرت شیخ رحمکارؒ د وصال او تجهیز و تکفین په موقع خوشحال خان هم حاضر وو...

# اورنګزیب او خوشحال خان

په کال ۱۶۵۷ء کښې شاه جهان د ورو بولو د بندیدلو- په مرض کښې ګرفتار او د حکومت دکاروبار نه پاتې شو- چونکه دارا ولی عهد سلطنت او د شاه جهان په طبیعت ډیر حاوی وو نو هغهٔ د حکومت معاملات په خپل لاس کښې واخستل- او داسې حالات ئې پیدا کړل- چه د هغې نتیجه د ورونړو ترمینځه په خونړو جنګونو کښې ظاهره شوه- په دې جنګونو کښې اورنګزیب کامیاب شو- او هغه په کال ۱۶۵۸ء کښې د ابو المظفر محی الدین عالمګیر په نامه تخت نشین شو- د اورنګ زیب د تخت نشینئ په وخت کښې خوشحال خان په خپل زور دستور د مغل حکومت جاګیردار او د خټکو د قبیلې سردار وو- او لکه چه وړاندې وئیلې شوی دی- د دارا او خوشحال زړونه د یو بل نه لرې ډیر خیرن وو- د غه وجه وه چه د تخت نشینئ په دې جنګونو کښې ترکومه حده چه د خوشحال خان تعلق دے هغه د اورنګ زیب طرفدار وو- او د دهٔ د دې طرفداری نتیجه دا وه چه دارا کابل ته په تلو کښې ناکامیاب شو-

لکه چه معلومه ده د خوشحال خان کورنئ د اکبر د زمانې نه د مغلو پرورده او د مغل حکومت په مرسته ولاړ وه- او دا حالت د اورنګ زیب د حکومت په ابتدائی کالونو کښې هم قائم وو- خوشحال خان د نوی حکومت د پالیسئ د کامیابولو په لړ کښې د مخالفو قبائیلو (یوسف زو، افریدو) سره څو جنګونه هم کړی وو- او په دې جنګونو کښې هغه بریالے شوے وو- او په دے ډول ئې د اورنګ زیب د سلطنت په یو دورافتاده صوبه کښې د حکومت وقار او برم قائم کړے وو- تر دغه وخته نهٔ خو اورنګ زیب په زړهٔ کښې د خوشحال خان بابت څه شکونه او بدګمانئ پیدا شوے وے- او نهٔ خوشحال خان ته د اورنګ زیب نه څه ګِله شکوه پیدا شوی وه- او د طرفینو په مینځ کښې د یو بل د بے اعتمادئ څه خبره نهٔ وه پیښه شوی- په دے بنا دا وئیل بے ځایه نهٔ دی- چه

خوشحال خان چه د شهنشاه اورنګ زیب کومه غندنه په خپل کلام کښے کړی ده. او د هغهٔ په کهاته کښے ئے په هغهٔ پسے د پلار قیدول او د ورونو قتلول وغیره ظلمونه لیکلی دی. دا د هغه زمانې پیداوار دے چه د بادشاه او د دهٔ ترمینځه مخالفت پیدا شوے دے. او په دے وجه داد ذاتی مخالفت نتیجه ده.

**دخوشحال ګرفتاری او د هغې اسباب :-** د شاه جهان د عهد حکومت په اخری کالونو کښے د کابل د صوبے ګورنر مهابت خان لهراسپ وو. او د پیښور نائب ګورنر میر یعقوب نومیدهٔ. د دے دواړو حاکمانو تعلقات دخوشحال خان سره دوستانه او خوشګوار وو. ولے په کال ۱۶۶۱ء کښے د مهابت خان په ځائے سید امیرخان د کابل ګورنر شو. د غه وخت نائب ګورنر مرزا عبدالرحیم وو. چه د خوشحال خان مخالف او د باکو خان یوسف زی دوست وو. د بهاکو خان او خوشحال خان ترمینځه شدید رقابت وو.

اورنګ زیب د خپلے تخت نشینئ په دویم کال ډیر خلاف شرع محصولونه موقوف کړی وو. چه په هغې کښے د غلے او مال مویشی وغیره د راهدارئ محصول هم وو. د دے معافئ نه عامو خلقو ته خو فائده رسیدله. ولے د دے اثر په جاګیردارانو پرے وتو. دا قانون د ملک په نورو حصو کښے نافذ شوے وو. لیکن د پښتنو په علاقه کښے د خاصو حالاتو په بنا پوره پوره نهٔ وو نافذ شوے. مرزا عبدالرحیم نائب ګورنر سید امیرخان ګورنر ته دا خبره ورانده کړه چه ترڅو د پیښور د علاقے یو څو زمینداران ګرفتار نهٔ کړے شی. ترهغې نهٔ خو د راهدارئ د معافئ قانون نافذ کیدے شی. او نهٔ ستا ګورنری استقلال موندلے شی. دا سازش په اصل کښے د خوشحال خان د ګرفتارئ د پاره شوے وو. د راهدارئ د معافئ د احکامو د نافذ کید و براه راست اثر په خوشحال خان پرے وتو. د دے راهدارئ د وصولولو حق د خوشحال خان یو مشر نیکهٔ ملک اکوړی ته د اکبر د لوری نه ورکړے شوے وو. ولے د دے خبرے هیڅ څه تاریخی ثبوت نشته چه ګوندے خوشحال خان د دے ذاتی نقصان باوجود هم د دے قانون په نفاذ کښے څه بندیز پیدا کړے وو. په دے بنا دا ګمان د یقین درجے ته رسی چه د خوشحال خان ګرفتاری د مغل اهلکارانو او دځینے نورو مقامی سردارانو د سازش نتیجه وه. چه د خوشحال خان خپل ترونه هم په کښے شامل وو. تجویز دا وو چه د خوشحال خان د ګرفتارئ نه پس به د هغهٔ منصب د هغهٔ ترونو ته ورکړے شی. او د دے په بدل کښے به د هغهٔ ترونه صوبه دار ته پنځوس زره روپئ ورکړی. چه دا سازش مکمل شو نو صوبه دار امیرخان په ۱۰۷۴ه / ۱۶۶۴ء کښے د شهنشاه اورنګزیب نه په مبهم ډول دیو څو

زمیندارانو دگرفتارولو اجازت اوغوښتو. او چه دا اجازت ورکړے شو نو صوبه دار سید امیر خان خوشحال خان دمشورے په عرض پیښور ته راوبللو اوګرفتارئے کړو.

خوشحال خان په خپل یواوږد نظم کښے چه په رنتهبور کښےئے د قید په ورځو کښے لیکلے دے. دخپلے ګرفتارئ په خلقو دهغ د ردِ عمل، دخپلو ځامنو او ترونو رویه اودیو اسیر په ډول د پیښور نه تر دهلی پورے دخپل سفرټول واقعات په ډیر تفصیل بیان کړی دی. ددے نظم نه هم دا معلومیږی چه دخوشحال ګرفتاری د هغهٔ دځه جرم نتیجه نه نه بلکه د سازش نتیجه وه. ددے نظم یو بند داسے دے.

خور شو په ملکونو دا خبرپه درست دیار
درست عالم دلګیر شو لا پښتون یاروا غیار

هرچه امراګان وو په صوبه کښے منصبدار
کل عالم حیران شو چه ئے اولیدهٔ داکار

لاړل په سبا د وخته ټول شول په دربار
اووے داهسے رنګ نیک خوا د شهریار

را رنګ ېوهٔ شی نواب بنهٔ ګنی دا کار
چه څه شو پاتے دمیځ ئے او نهٔ کړو ګفتار

پاسیدل له ځایه امراګان شول تار په تار
درے ورځ شوے تیرے زما ترونه نابکار

ورغلل مغل لره قبول ئے کړو مدار
اس و خلعتونه مغل ورکړهٔ په اقرار

ملک ئے زما ورکړهٔ نالائق ئے کړو سردار
کور و خیلخانه اولس همه شو خبردار

درست خټک د دیو وکشتن ته شو تیار
روح د دیو والوت په بلا شو ګرفتار

ما و خیلخانے او قام ته اووے چه زنهار
مرګ کشتن مه بویه نهٔ څه نورشر واشرار

بویه دښمن ښاد شی چه ئے ورک کړهٔ خپل تبار
بل به فساد ګی شی د بادشاه درومی اعتبار

دوی او درست اولس په زیارت دشیخ رحمکار
ټول شول له دے کاره په قریب شول تو ګار

څویه ے نادان وو په خطا لاړل بسیار
مرګ کشتن که نهٔ وے دهٔ دِ ته پریښوے وقار

دوی په زړهٔ کښے داوے چه که سل کړو که هزار
هرکله چه خلاص شی فلا نا موږ به یو په دار

بل فکرئے نهٔ وو ورپیدا شو دځان دار
مرګ و ته ے کښیناستهٔ په لیل و په نهار

تیرے شوے په بند کښے زما دوه میاشتے په شمار
ملک واړه ویران شو خلقه شوه په کهسار

او غوښتے روپئ پنځوس هزار صوبه دار
ما وے رد به نهٔ کړم یو یو چک نه یو دینار

دواړه لوریه دکړهٔ سره دا قول وقرار
یو مغل بے پته بل ے نرونه شرمسار

اوس خو بانډهٔ دادی چه ئے ځانئے وی هندوبار
زرئے فکر بویه په تعجیل و په تلوار

زهٔ لا په دا خوښی ووم چه که ورشم تر دربار
دعمر دولت خواه ووم د عزت ووم طمعدار

هند ته ئے روان کړم بدرقه ے "مستجاب".
هم ملک هم خان هم دهمه "غوری" ارباب

لکه څه رنګ چه د دې نظم نه څرګندېږي. د سازشيانو اصلي مدعا حاصله نه شوه. يعني نه خو د خوشحال خان منصب د هغه د ترونو نه سمبال شو او نه د صوبه دار لاس ته پنځوس زره روپۍ راغلې او هرکله چه صوبه دار په خپل مقصد کښې ناکامياب شو نو د خپل اقدام د حق بجانب ثابتولو په غرض ئې د محصول راهدارۍ د معافۍ د احکامو د مخالفت په جرم کښې خوشحال خان هند ته پښې تړلې اوليږلو -

د پلينبور د قيد په دوران کښې ترڅو چه د خوشحال خان د حالاتو د بهتر کېدلو توقع کېدله. ترهغې هغه خپل اولس د شور و فساد نه منع کړې وو. ليکن دا سې معلومېږي چه کوم وخت هغه د حالاتو د اصلاح نه مايوس شوې دې. نو هغه خپل مشر ځوی ته د حملې اشاره کړې ده.[1] ولې د هغه نه دا کار او نه شو. به هر حال خوشحال خان د هلې ته بنديوان اوليږلې شو. خوشحال خان په دې طمع وو چه بادشاه به د هغه د معاملې تحقيق اوکړي او هرکله چه هغه بې ګناه ثابت شي نو د هغه د دې بې عزتۍ به پوره پوره تلافي اوکړې شي. ليکن د خوشحال خان دا توقعات شنډ اوختل. نه خو بادشاه د هغه د معاملې تحقيق اوکړو او نه ئې د هغه په صفايۍ کښې د هغه د دوستانو سفارش ته غوږ کېښودلو. د خوشحال خان د خانداني او ذاتي خدماتو صله هغه ته دا سې ورکړې شوه چه هغه بې پوښتنې جيل ته اوليږلې شو. څه موده پس بادشاه د خوشحال خان پرې سنبودلو ته په دې شرط تيار شو چه خوشحال خان د خپل آل و عيال د ضمانت په ډول هند ته راولي. او په دې غرض ئې صوبه دار امير خان ته حکم هم اوليږلو. دا غم د خوشحال خان د پاره د خپلې ګرفتارۍ نه هم زيات وو.

د خټکو او يوسف زو ترمينځه اګر چه غليظه دشمني وه. ليکن په دې تنګسه کښې يوسف زو د پښتنولۍ په ننګ د خوشحال خان مرسته اوکړه. او هغه آل و عيال ئې د شاهي ملازمانو د ګرفتارۍ نه اول اول خپلې علاقې ته بوتلو. او د سيکري په مقام ئې چه د کاټلنګ او جمال ګړهۍ ترمينځه يو کلې دې ديره کړو. د يوسف زو دلوري نه د خوشحال خان سره دا يو داسې کارنامه وه چه هغه ئې د پښتنولۍ په رنګ کښې په خپلو تيرو کارونو پښېمانه کړو. دغه وجه وه چه د خلاصي نه پس د حکومت د شديد اصرار باوجود هم هغه د يوسف زو د علاقې

---

[1] هرچه راسره وو هغه واړه وو ترسان | چا وې چه خټک به حاضر نه شي په ميدان
ما خو پيغام کړې وو هم دا سې ووګمان | اوس به راڅرګند شي له يو لوريه نه نشان
هسې رنګ جنګ به اوشي دا آخر زمان | ګورو څو به شمار شي دواړه لوريه کشتګان

حکومت قبلولو ته تیار نهٔ شو ـ او په حقیقت کښې د حکومت سره د خوشحال خان د عملي مخالفت اغاز هم دغه د یوسف زو د علاقے د حکومت د قبولیت نه د انکار واقعه ده ـ

د شهنشاه اورنګ زیب دے یک طرفه سلوک د خوشحال خان زړهٔ ته دومره درد او رسولو چه هغه خوشحال خان چه د خپلے ګرفتارۍ په اغاز کښې ئے خپل اولس د فساد نه په دے غرض منع کړے وو چه د بادشاه اعتبار قائم پاتے شی اوس په دے وینا مجبور شو، چه ـــــ

مرګه هومره مهلت ورکړے وخوشحال ته　　چه جمدر د مدعی په وینو سور کړم

خوشحال قریبًا څلور کاله په پیښور، دهلی او رنتهمبور کښې قید او بیا د محمد امین خان میر بخشی په سفارش د قید نه ازاد شو ـ ولے په اګره کښې نظر بند وو ـ صوبه دار امیر خان د پښتنو په علاقه اووهٔ کاله (۶۸-۱۶۶۱ء) ګورنر وو ـ په دے دوران کښې د پښتنو په علاقه کښې بد امنی وه ـ او د خوشحال خان د قید و بند په دوران کښې خو د یوسف زو د شورښ دومره اهمیت اوموندلو چه شهنشاه په خپله د دے بدامنۍ وجوهات د خوشحال خان او پوښتل ـ خوشحال خان موقعه بیا موندله ـ عرض ئے اوکړو ـ چه صوبه دار امیر خان یو غافل او بے پرواه حاکم دے ـ ټوله ورځ د شرابو په نشه کښې سرګرمه پروت وی ـ او د هغهٔ نائب مرزا عبدالحکیم خو د ملکانو په شان ټوله ورځ چرګان جنګوی. شهنشاه د داسے حاکمانو نه د ښهٔ انتظام توقع څه رنګ ساتلے شی؟ هغهٔ دا هم اووئیل چه که امیر خان عاقل وے نو زما غوندے د عمر دولت خواه به ئے بے ګناه ولے قیدولو؟ بادشاه د هغهٔ نه د امیرخان په ځائے د یو بل موزون ګورنر پوښتنه اوکړه ـ او هغهٔ ورله د مهابت خان مرزا لهراسپ نوم پیش کړو ـ چنانچه سید امیر خان د کابل د صوبه دارۍ نه راواغوښتلے شو ـ او د هغهٔ په ځائے مهابت خان د کابل ګورنر شو ـ د مهابت خان په خصوصی درخواست خوشحال خان ته هم د وطن اجازت ورکړے شو ـ او هغه څه پنځه کاله پس په کال ۱۶۶۸ء کښې بیا وطن ته راغلو ـ

د قید په دوران کښې د خوشحال خان په زړه کښې د مغلو نه د سرکښۍ جذبه راپیدا شوې وه ـ او دا یو فطری امر وو ـ ولے هغه لا په جذباتی کشمکش کښې ښکیلا وو ـ که یو طرف ته هغه او د هغهٔ خاندان د مغلو پرورده وو ـ نو په بل لور هغه اعتماد چه د دے خاندان په مغل حکومت کولو ـ په ډیره بده رنګه اوس زائل شوے وو ـ د خوشحال خان دا جذباتی کشمکش او د خپل ائنده ژوند په حقله د هغهٔ دوجالی د هغهٔ د یوے قطع نه څرګندیږی ـ

یا خو خواه مخواه منصب دے | یا خو گنج په لاس کتاب
یا دے زغ د سپینې تورے | کهستان مرجع مآب

لیکن د دے جذباتی کشمکش باوجود چه هغه وطن ته راغی نو داځ غوره کړه چه ترڅو کیدے شي د مغلو سره خپل تعلقات او نهٔ شلوی۔ ولے د هغهٔ دا اراده پوره نهٔ شوه۔ دغه وخت د لنګرکوټ د تعمیر معامله پیښه شوه۔

مهابت خان چه پیښور ته راغی نو د شهنشاه په حکم ئې د لنګرکوټ د تعمیر اراده اوکړه۔ او خوشحال خان ته ئې د هزاری منصب او د یوسف زو د علاقے د حکومت پیشکش اوکړو۔ لیکن خوشحال خان د دے په جواب کښے مهابت خان ته اوليکل چه " زهٔ پلار په نیکهٔ د مغلو دولت خواه او وفادار وم۔ یوسف زی د حکومت نه روګردان وو۔ ما د هغوی په وژلو او تباه کولو څه صرفه نهٔ وه کړی۔ ولے د دے برادرکشئ او دولت خواهئ په بدل کښے زهٔ بےګناه قید شوم۔ ټوله خیل خانه ے تار په تار شوه۔ او د دے لوئے مصیبت کښے د دشمنئ باوجود یواځې یوسف زی زما پکار شول۔ زما آل و عیال ته ئې پناه ورکړه۔ او هغوی ئې د بادشاه د قید و بند نه بچ کړل۔ که چرے زهٔ اوس هم د یوسف زو مخالفت اوکړم نو دا به زما د پاره د انسانیت او پښتون ولئ په آئین کښے یوه داسے بدنامی وی چه د هغے داغ به په یوے نیک نامئ هم لرے نهٔ شی "

خوشحال خان نهٔ صرف د یوسف زو د حکومت قبلولو نه انکار اوکړو۔ بلکه د لنګر کوټ د تعمیر په حقله ئې هم مهابت خان ته دا مشوره ورکړه چه یوسف زی یوه لویه قبیله ده۔ د لنګرکوټ په تعمیر دا نهٔ شي ایل کیدے۔ بلکه د دے نه به حالات نور هم خراب شي۔ ولے د لنګرکوټ په تعمیر کښے شمشیرخان ډیر مدعی وو۔ هغهٔ د دے قلا د تعمیر ضرورت ښکاره کړو۔ د دے په جواب کښے خوشحال خان شمشیرخان ته دا اوویل ے

مهم د یوسف زیه درته وایم ښکاره
د غرهٔ خسی کول دی لاس ګنده ګریوان د پارهٔ[1]

د لنګرکوټ په حقله مهابت خان د خوشحال خان مشوره قبوله کړه۔ او هغهٔ بادشاه ته د دے قلا د نهٔ جوړولو خواست اوکړو۔ ولے شمشیرخان د خپل طرف نه هم بادشاه ته د دے قلا د اهمیت او ضرورت په حقله اوليکل۔ بادشاه د شمشیرخان د رائے سره اتفاق

---

[1] "خوشحال خان خټک" د دوست محمد خان کامل۔

اوکړو۔ مهابت خان ته ئې کابل ته د تلو هدایت اوکړو۔ او د شمشیر خان په نګرانۍ کښې د لنګرکوټ د تعمیرکار شروع شو۔ تر دې وخته اګر چه خوشحال خان په جذباتي کشمکش کښې ګرفتار وو۔ لیکن هغهٔ د حکومت برخلاف څه عملي اقدام نهٔ وو کړے۔ ییَن د لنګرکوټ تعمیر د هغهٔ په مخالفانه جذباتو کښې نور شدت هم پیدا کړو۔ او هغه ئې د مغل حکومت عملي مخالفت ته اماده کړو۔ د لنګرکوټ تعمیر چه په خوشحال خان کوم اثر کړے دے هغه د دے شعرونو نه څرګندیږی۔ ے

لنګرکوټ مغلو ساز کړو — زهٔ په ننګ بیا د افغان شوم
که یوسف وو که مندړ وو — زهٔ د دوارو نګهبان شوم

دا قلا غالبًا په سنه ۱۶۶۹ء کښې تعمیر شوه۔ دغه وخت کښې شمشیر خان ترین د یوسف زو د علاقې فوجدار وو۔

د یوسف زو په علاقه کښې د خوشحال خان د قید په ورځو کښې ډیره بد امني وه۔ او دا علاقه د شاهي فوځونو د لاسه ډیره زېلې شوې وه۔ په دغه ورځو کښې هم د دے علاقې حالات ډیر مخدوش وو۔ اوګرچه د فوځی د باوٗ په وجه شورش غلےوو لیکن حالات غیریقیني وو۔ خوشحال خان په خپل یو نظم کښې د دے حالاتو ته اشاره کړی ده۔ په دے نظم کښې که په یو لور خوشحال خان د خپل قبیلوی شان و شوکت او اقتدار او خپل انتظامي قابلیت اظهار کوی۔ نو په بل لور د شمشیر خان ترین غندنه هم کوی۔ د دے نه دا معلومیږی چه د شمشیر خان ترین او خوشحال خان تعلقات هم خوشګوار نهٔ وو۔ او شاید چه هغه به د خوشحال خان برخلاف بادشاه ته مخالفانه رپورټونه لیږل۔ په دے نظم کښې خوشحال خان د شمشیر خان ترین برخلاف د یوسف زو د پارولو کوشش هم کړے دے۔ او د دے نه دا څرګندیږی چه هغه اوس د حکومت عملي مخالفت ته اماده شوے وو۔ اګرچه تر دے وخته ئې څه عملي قدم نه وو پورته کړے۔ نظم دا دے۔ ے

شل زره ځوانان لرم همه له یوه ذاته
واړه یګانه شا په خدمت کښې راسته خم

څو زره سوارهٔ دی سرګردانه په څوکاله — زهٔ که په زړهٔ روغ وے چاربه ولےوے برهم
سل کاله که تیرشی دامهم به فیصل نهٔ شی — دارنګے چه کیږی ګوره څه اوشی له هم
څه شو شمشیرخان ترین که پوخ پنځ هزاری دے — ماوته هیڅ نهٔ دے مګرېے اومه شلغم
څو به د منصب په ډول زما برابری کا — څه مجال د ګوډے چه سیالی که د ضیغم

خوارشه یوسف زی چه به ترین ددوی خانی کا اوس که ښکار د باز کانده هیلۍ نه دهٔ کرم
څو چه په څوکاله شمشیرخان ترین کارکړی ما به څو میاشتې هغه چار کړه مسلم
دا مکر فریب چه دحیات ترین هنر دے کله دا د نر دے دا د ښځې دے عالم
پوهه تیز نشته دا فلک په سترګو ړوند شه ښځه د خانۍ په خطاب کاندی مکرم
دا املا انشا چه واړه دے د شیطانۍ کا تل بانده نفرین اوری له لوح وله قلم

حال حقیقت وایم چه هرچا وته معلوم شی
زهٔ څهٔ شاعر نهٔ یم هاځ توبه له مدح وذم

**د خیبر حادثه:-** په کال ۱۶۷۰ئ کښې د مهابت خان په ځائ محمد امین خان د کابل ګورنر شو۔ محمد امین خان د میر جمله ځوئ وو۔ چه دګولکنډے اوسیدونکے یو جوهری وو۔ او د اورنګ زیب ډیرلوئ اعتباری امیر وو۔ محمد امین خان هم ډیر قابل، زړور او دیانت دار امیر وو۔ لیکن حد په پورته ضدی او مغرور بنیادم وو۔ د خوشحال خان ذاتی دوست وو۔ او هغهٔ دقید په ورځو کښې ئ د هغهٔ د خلاصی د پاره مخلصانه کوششونه کړی وو۔ د غه وجه وه چه اګرچه د خوشحال خان په زړه کښې د مغل حکومت برخلاف انتقامی جذبات پاریدلی وو۔ لیکن د محمد امین خان د ګورنرئ په وخت کښې هغه بیا خاموش وو۔ د دے ګورنر د حکومت په ابتداء کښې یو څو داسے کارونه اوشول چه د هغې په وجه د پښتنو د صبر مزے لنډ شو او په دے علاقه کښې یو ځائ شورش پورته شو۔ چه د هغې له کبله د مغل حکومت اقتدار ته لویه صدمه اورسیدله۔ په دے شورش کښې د خوشحال خان لویه برخه وه۔ او د هغهٔ نه علاوه د دے شورش د وه قائدین نور هم وو۔ چه د یو نوم ایمل خان او په خته مهمند او د بل نوم دریا خان او په قام اپریدے وو۔

مغل حاکمانو چه به د پښتنو سره کوم سلوک کولو د هغې اندازه د دے نه لګیدے شی چه یو وار د "جمرود" په مقام د پښتنو قبائیلو ځنې مشران او سرداران د محمد امین خان سلام ته راغلی وو۔ د غه وخت ګورنر د شرابو په نشه کښې مخمور وو۔ او د ګورنر د علاقے یو فوځدار حسین بیګ خان د هغهٔ په خدمت کښې حاضر وو۔ دے فوځدار د پښتنو د دے مشرانو د حاضرئ اطلاع او ګورنر سره د دوئ تعارف په دے الفاظو کښې اوکړو۔ چه "د نواب یو څو سپی سلام ته حاضر شوی دی۔" د فوځدار په دے تعارف او ګورنر له خوا چه د دوئ سره کوم سلوک اوشو۔ په هغې دا مشران ډیر ستومانه او په خپلو راتلو پښیمانه شول۔ ولے د دے نه زیات یو بل سپکاوے هم زر په زر د پښتنو سره اوشو۔

د صافي قبيلې څخه خلق د يو فوځي څوکۍ د سپاهيانو سره د خريد و فروخت په غرض ديره شوي وو. د حسين بيګ فوځدار کوم يو څو سپاهيانو د يو صافي جينۍ ابرو ريزي اوکړه. صافيانو د پښتنولۍ د ائين مطابق دغه سپاهيان اووژل. او اوتښتيدل. حسين بيګ چه دد ے نه خبر شو نو قهر واخست. سمدستی ئے د صافي قبيلې ملکان رااوغوښتل. او د هغوی نه ئے د قاتلانو مطالبه اوکړه. ولے هغوی انکار اوکړو. حسين بيګ د نورو قبيلو سردارانو ته حکم اوکړو چه د صافيانو برخلاف د حکومت مرسته اوکړی. دا قبائيل د حکومت سره د معاهدو د پابندۍ مطابق جمع شول. او حسين بيګ د دے پښتنو په مرسته په صافيانو حمله اوکړه. او هغوی ته ئے ډير زيان ور اورسولو. په دے خبره د دے قبيلو سرداران په زړه کښے پښيمانه شول. او صافيانو ته ئے درپرده پيغام اوليږلو. چه تاسو چه څه کړی دی هغه مو د پښتنو کار کړے دے. او موږ چه څه کړی دی هغه مو د مجبورۍ نه کړی دی. اوس که تاسو څه نور لاس پښے او خوزوئ نو موږ به تماشه کوو. چنانچه صافيانو هم دغه شان اوکړل. او د دے نتيجه دا شوه چه په دے علاقه کښے د مغل حکومت برخلاف داسے زوردار شورش پورته شو چه څو کاله ئے د مغل حکومت بهترين فوځونه شالنګ کړی وو. که چرے دے واقعاتو ته د انصاف په نظر اوکتلے شی نو په دے کښے سراسر د حسين بيګ فوځدار قصور زيات وو. هغه ته دا پکار وو چه د صافيانو نه ئے د دومره شديد انتقام اخستلو نه اول د خپلو سپاهيانو په اعمالو غور کړے وے. د پښتنو په وطن کښے د دے قسم کارونو سزا مرګ وی. پښتنو د خپل وطن د آئين مطابق څه زياته نه وه کړے. او که چرے حسين بيګ خپلے عهدے او د حکومت په اقتدار مغرور شوے نه وے او د تدبير نه ئے کار اخستے وے. نو دا خبره به دومره نه وه زياته شوی. او دومره لويه تباهي به نه وے شوی. بهر حال د دے نه پس مهمندو او صافيانو په خپل مينځ اتحاد اوکړو. او د ايمل خان په مشرۍ کښے ئے په حسين بيګ حمله اوکړه. او هغه ته ئے شکست ورکړه. په دے خبره حسين بيګ د پښتنو د نورو قبيلو مشرانو ته لاس واچولو. ولے د هغوی په مرسته د خپلے خپلے اولس اود ريد او حسين بيګ په خپله اراده کښے ناکامياب شو.

د مغل حکومت په زمانه کښے به دا دستور وو. چه د صوبے ګورنر به اوړی په موسم کښے په کابل کښے وو. او د ژمی موسم به ئے په پيښور کښے تيرولو. او نائب ګورنر به ټول کال په پيښور کښے اوسيده. په کومو ورځو کښے چه دا واقعات اوشول. د ژمی موسم په وتو وو. او کابل ته د تلو وخت نزدے شوے وو. محمد امين چه د حسين بيګ د

شکست او د پښتنو د روئې نه خبرشو نو دومره قهرواخست چه دځپله ښځه نه ټې اول کابل ته د تلو اراده اوکړه. غرض ئې داوو چه په لاره کښې به ئې د صافیانو او دهغه پښتنو کوموچه حسین بیګ ته شکست ورکړے وو. غوږونه تاؤ کړی چه دوئ بیا د حکومت برخلاف داسے اقدام ته تیار نه شي ـ محمد امین خان سره په دغه وخت کښې دافریدو او ورک زواو نورو پښتنو قبائیلو مشرانو او ملکانو نه علاوه خوشحال خان خټک او ارباب مستجاب خان مهمند هم موجود وو ـ خوشحال خان لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی ـ د مغلو د عملی مرستے نه ویزاره شوے وو ـ لیکن د محمد امین خان سره د ذاتی تعلقاتو په وجه موجود وو ـ

د پښتنو برخلاف پښتانه هم د محمد امین خان د ارادو نه خبر شوی وو ـ او دغوی د خیبر لاره بنده کړی وه ـ او محمد امین خان هم د دے واقعاتو نه خبر وو ـ د خوشحال خان د وینا مطابق مغل فوځ ځلوپیښت زره وو ـ محمد امین خان بوډیر دولت منداميروو ـ په دے موقع دهغهٔ سره د ځپلے خزانے نه علاوه خپل حرم هم وو ـ د روانیدو نه اول د ارباب مستجاب خان په مشرئ کښې یوه جرګه مخالفو پښتنو ته په دے غرض اولیږلے شوه چه د شاهی فوځونو د تیریدو د پاره دخیبرلاره ازاده کړی ـ ولے دا جرګه کامیابه نهٔ شوه ـ او محمد امین خان په زبردستئ د لارے د ازادولو فیصله اوکړه ـ شاهی فوځونه د جمرود نه روان شول ـ او ترلنډی کوتل په ارام و خیریت اورسیدل ـ ولے دا فوځ چه دلنډی خانے خوااوشا ته اورسیده نو دلته کښې د مخالفو پښتنو لښکر چه په صافیانو مهمندو شنوارو او افریدو مشتمل وو ـ مقابلے ته تیار ولاړ وو ـ دغه ځائے سړک تهانے ته ورېریوزی ـ داهغه ځائے دے چه د پاکستان د قیام نه اګاهو په ۱۹۴۶ کښې د پنډت نهرو برخلاف چه په هغه ورځو کښې په عبوری حکومت کښې د خارجه محکمے وزیر وو ـ د خیبر قبائیلو ډیرے زوردارے مخالفانه مظاهرے کړے وے ـ

مغل فوځ یو طرف ته د مست جنګی هاتیانو سره په پښتنو حمله اوکړه او په بل لور ئې د توپ خانے نه ګوله باری شروع کړه ـ د دے په جواب کښې پښتنو هم په مغل فوځ د غشو او کانو باران اوورولو ـ مقابله جاری وه لیکن ډیر زر په مغل فوځ وارخطائ راغله او په دوئ کښې داسے اړے ګړے جوړ شو چه د یو بل نه په ځنګښې زغلیدل ـ په افراتفرئ کښې ځنے فوځیان خو په کندو زوپرونو کښې پریوتل ـ او ځنے د اسونو، هاتیانو د پښو لاندے ریز مریز شول ـ تموله ورځ د مایوسانه جنګ نه پس شاهی فوځ تیښته

اوکړه - او پښتنو هم ورپسې بدې راښکلې -

په تیښته کښې شاهي فوځ د لنډي کوتل نه په قطب ځخه لار اختیار کړه - کومه چه د شلمانیانو او ملاګورو په عزونو کښې علي مسجد ته راوتلی او د لوټ لارې سره یوځائې شوی ده - محمد امین خان هم د خپل یو پښتون جمعدار چه د ځخهٔ ډیر وفادار وو - په مشوره د غه لار اختیار کړه - علي مسجد ته راووت او په ډیره بده رنګه دوه لاس دوه پښې پېښور ته راورسید - د مغل فوځ باقي حصه چه د لنډي کوتل په قطب د ملاګورو غر تهاړې ته اورسیده نو دلته پرې پښتنو بیا یو خونړۍ حمله اوکړه - دا ځل په مغل فوځ هم ځخه نشان آفت راغې څه رنګ چه د اکبر په زمانه کښې د بیربل او زین خان په فوځونو د یوسف زو په علاقه کښې راغلي وو - د ځبیر په دې عظیمه حادثه کښې د زرګونو په شمیر کښې مغل فوځ اووژلې شو - او ډیره لږه حصه ځ ژوندۍ پاتې شوه - د پښتنو په لاس دومره بې اندازې مال و دولت او سازو سامان راغې[۱] - چه هر پښتون په دغه ورځ د محمد امین خان په شان دولتمند شو - ولې په خپله محمد امین خان ، د محبوب خان سپاهي » شو - په دې حادثه کښې د محمد امین خان د خزانې تالا کیدو نه علاوه د ځخهٔ وره لور ، مور ، خور او ښځه او د مغل امیرانو بیګمات د پښتنو په لاس کښې بندیوانې شوې - دا میرمنې ورو ستو د یو لوئې رقم په بدل کښې ازادې کړې شوې - د ځنې مؤرخینو په خیال کښې د محمد امین خان ښځه په دې علاقه کښې وژلې شوې وه - ولې ځنې داوائې چه ځخه هم د پښتنو په بند کښې وتلې وه - لیکن ځغې د شرم او غیرت د جذبې ماتحت د بیرته تلو نه انکار اوکړو - او باقي عمرې د خدائې په یاد کښې تیر کړو -

په دې حادثه کښې خوشحال خان په خپله موجود وو - ولې د ځخهٔ کردار واضح نهٔ دې د دې عظیمې حادثې نه پس چه خوشحال خان کوم نظم وئیلې دې په ځغې کښې د محمد امین په تباهۍ او د ځخهٔ د ټبر په بربادۍ او سپکاوی د رنج و غم جذبات ښکاره کړې شوی دی - محمد امین خان د خوشحال خان ذاتي دوست او محسن وو - او د یو دوست په حیثیت د انسانیت او شرافت دا تقاضا وه چه ځخه د خپل دوست په داسې تباهۍ او بربادۍ د رنج و غم جذبات ښکاره کړې وې - ولې د دې باوجود که په یو لور ځخهٔ د خپل دوست په داسې تباهۍ او بربادۍ رنجیده او غمژن دې - نو په بل لور چونکه د پښتنو دا کامیابي

---

[۱] اندازاً د دوؤ کرو رو پو نغدیت او قیمتي سازو سامان د پښتنو په لاس راغلې وو -

د مغل حکومت د مغرورانه او نامناسبه پالیسۍ شدید شکست وو. نو دے خیال د هغهٔ انتقای جذباتو ته تسکین هم ورکړے دے. دے حادثے د مغل حکومت اقتدار ته شدید صدمه رسولی وه. نو دا لازمی وه چه حکومت به د دے د تلافئ په لړ کښے شدید اقدامات کول. د غه وجه ده چه د راتلونکو خطراتو په حقله هغه پښتنو ته تنبیه او خبردارے ورکړے او ایل او باغی ټولو پښتنو ته ئے د محتاط او بیدار او سیدلو تلقین کړے دے. نظم دا دے

چه دانا تر نادان لا وړنی بستر — مګر نهٔ دے دا ژوند څه معتبر
چه ے فهم فکر اوکړو باور اوکړو — په دا باغ کښے ګل له خاره دے بهتر
چه له کومو غرونو راغے چرته دروی — اباسیند لا په دا هیڅ نهٔ دے خبر
د شلمان غرونه لا په دا کله خبردی — چه زرګونه په شلمان کښے شول ډېر
نهٔ اسمان څنے خبر شو نه دا زمکه — چه عالم شو په طوفان زیروزبر
په یوه زمان کښے څه قدرت ښکاره کړهٔ — چه قادر دے توانا الله اکبر
مکافات د کوم ګناه د کوم شامت دے — چه ډیر د میر جمله شو درست تهبر
نهٔ په ډیرو نهٔ په لږ د خدائے په کړوده — لږ لښکر په ډیر لښکر موی ظفر
څه شنواری څه مهمند څه افریدی وو — چه ئے مات کړو د صوبے واړه لښکر
دا طوفان چه په مغلو باندے سازشو — په کشتن په او لجو هیڅ مهٔ کړه نظر
که اسونه، که فیلان که اسبابونه — په انبار انبار سپین زر و که سرهٔ زر
هغه بنے پری پیکرے د پالکیٹو — همګی پرے پورے لال و درګوهر
بندیوانے شوے په لاس د پښتنو کښے — دا به څوک کا د مغل د زرهٔ بهر
دا کینه به یو په سل ترے نه اوباسی — که ئے لاس شی په جمله پښتانهٔ بر
پښتنو سره که شته څه عقل و پوهه — ایل یاغی دِ څنے کاندی اوس حذر

دا متل د زمانے دے څه اوس نهٔ دے
چه نامرد خر په پالان وهی نه خر

د خیبر حادثه په کال ۱۶۷۲ء کښے پیښه شوی وه. شهنشاه اورنګ زیب چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغهٔ سمد ستی د لاهور ګورنر فدائ خان د محمد امین خان امداد ته او لیږلو. فدائ خان چه پیښور ته راغے نو سمد ستی ئے ارباب مستجاب خان ګرفتار او قتل کړو. د مغل حکومت په خیال کښے د خیبر په حادثه کښے د پښتنو په لښولو

کښې د دهٔ لاس وو ـ خوشحال خان په دے ورځو کښې خپل آل و عیال د اکوړی نه نظام پور ته بوتلے وو ـ فدائی خان د ضروری انتظاماتو او محمد امین خان سره د مشورے نه پس بیرته لاهور ته لاړ ـ په دغهٔ پسے محمد امین خان هم د کابل د صوبه دارۍ نه اوغوښتے شو ـ د محمد امین خان په وخت کښې خوشحال خان د مغل حکومت نه د ازردګۍ باوجود څکه خاموش وو چه د محمد امین خان سره د دغهٔ ذاتی دوستانه تعلقات وو ـ او د دے دوستانه تعلقاتو په وجه دغه د عملی سرکښۍ نه مجبوره وو ـ د ارباب مستجاب خان د قتل په وجه مهمند هم اوس د حکومت برخلاف پاریدلی وو ـ دغه وجه وه چه د مستجاب خان خپلو خپلوانو د حکومت برخلاف د څه عملی اقداماتو کولو په حقله د خوشحال خان سره جرګے مرکے شروع کړی وے ـ

د محمد امین خان نه پس د ولایت افاغنه په ګورنرۍ بیا مهابت خان مقرر شو ـ دذے نه وړاندے هم دے دوه ځله د دے صوبے ګورنر پاتے شوے وو ـ او د دهٔ په باب کښې د شهنشاه اورنګ زیب دا خیال وو چه په دے مخدوشو حالاتو کښې به دے کامیاب شی ـ د خوشحال خان او مهابت خان ترمینځه هم دوستانه تعلقات قائم وو ـ او لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د مهابت خان په خصوصی درخواست اورنګ زیب عالمګیر خوشحال خان ته د وطن د تلو اجازت ورکړے وو ـ دغه وجه وه چه خوشحال خان د مهابت خان زیر احسان وو ـ او مهابت خان هم دغه زیر احسان ګڼلو ـ د دے تعلقاتو په بنا چه مهابت خان د هندوستان نه کابل په لور روان وو نو دغهٔ خوشحال خان ته اولیکل چه " زهٔ ستا په دوستۍ فخر کوم ـ او امید لرم چه ته به زما ملاقات ته راشے ـ چه د ملک د انتظام په حقله صلاح مشورے اوکړو ـ" د دے په جواب کښې خوشحال خان دغهٔ ته دا اولیکل چه " زما دا خیال وو چه د پښتنو په وژلو به زهٔ مغل شم ـ ولے د دے باوجود مغل نهٔ شوم او دغه شان پښتون پاتے شوم ـ اوس په دے خپل بے ځایه خدمت افسوس کوم ـ او په دے وجه زهٔ معذوره یم ـ" د خوشحال خان دا یقین وو چه مهابت خان به ے خوامخواه د منصب په قبلولو مجبوروی ـ او د دغهٔ د احسان په وجه به مخ په مخ انکار نهٔ شم کولے ـ نو دا ے غوره اوګڼله چه د مهابت خان نه ځان په ډډه کړی ـ چنانچه دغه لاچې ته لاړ ـ د دے نه یو ځل وړاندے هم د مهابت خان د ګورنرۍ په زمانه کښې خوشحال خان د یوسف زو د علاقے د انتظام سمبالولو نه مهابت خان ته انکار کړے وو ـ دا ځل هم دغه د مهابت خان سره عملی تعاون ته تیار نهٔ شو ـ دا ظاهره ده چه مهابت خان به د خوشحال خان دا

انکار د هغهٔ په خود سرئ او سرکښئ محمول کولو ـ په دے وجه مهابت خان هم دخوشحال خان د تعاون نه په زړه کښے نااميده شو ـ او د هغهٔ برخلاف ئے منصوبے شروع کړے.

مهابت خان چه پيښور ته رااورسيده نو په ځائے د دے چه هغهٔ د پښتنو سره سخت سلوک کړے وے هغهٔ د روادارئ نه کار واخست ـ او د صلح صلاحيت فضا ئے پيدا کړه. چنانچه هغهٔ مهمند داسے په خپل تار راواړول چه هغه خلق چه د مستجاب خان په مرګ بغاوت ته تيار شوی وو ـ او د خوشحال خان سره ئے جرګے مرکے شروع کړی وے ـ اوس هغه خلقو خوشحال خان ته خطونه ليکل او هغهٔ ته ئے دحکومت سره د تعاون اومرستے مشورے ورکولے ـ ليکن تر دے وخته لکه چه د واقعاتو نه ظاهره ده اګرچه خوشحال خان د مغلو نه آرزده وو ـ او د هغهٔ په زړهٔ کښے انتقامی جذبات پيدا شوی وو ـ ليکن د دے باوجوُ هغه د حکومت خلاف عملی اقدام کولو ته تيار نه وو ـ صرف د حکومت سره ئے د تعاوُن په نهٔ کولو اکتفا کړی وه ـ د هغهٔ دا اراده د هغهٔ د دے شعر نه ښکاره ده ـ ے

د فسـاد فکر ے نشته خدائے حاضر دے
خپل ساعت به تيروم وخت اخـر دے

وے مهابت خان د خوشحال خان نه د عملی تعاون توقع لرله ـ بل لور ته خوشحال خان هم دخپل هوډ نه اوړيدونکے نهٔ وو ـ په دے بنا د مهابت خان د لوری نه په منصب اصرار او دخوشحال خان د لوری نه انکار د طرفينو په زړونو کښے د نفرت او مخالفت جذبات نور هم شديد کړل ـ

دخوشحال خان د قيد و بند په ورځو کښے د خټکو د قبيلے د مشرئ او منصب دارئ فرائض د خوشحال خان مشرځوی اشرف خان ته حواله شوی وو ـ په دغه ورځو کښے هم دا فرائض د اشرف خان په غاړه وو ـ خوشحال خان هم په دے مشرئ رضا وو ـ ليکن د خوشحال خان دوئم ځوئے بهرام خان دخپل ورور په مشرئ ناراضه وو ـ او د دواړو رونړو ترمينځه تعلقات ډيرکشيده وو ـ بهرام خان د اشرف خان د لاسه در په دېکے وو ـ چه خوشحال خان لاچئ ته لاړ نو مهابت خان د اشرف خان نه ددے خبرے مچلکه واخستله چه خپل پلار به په خپله علاقه کښے نهٔ پرېږدی ـ په دے خبره د خوشحال خان په جذباتو کښے نورشدت هم پيدا شو ـ مهابت خان په دے هم اکتفا او نهٔ کړله ـ بلکه هغهٔ د اشرف خان او بهرام خان د مخالفت نه فائده واخستله ـ اشرف خان اګرچه د حکومت منصبدار وو ليکن مهابت خان د هغهٔ په رويه شکمن وو ـ دغه وجه وه چه هغهٔ د بهرام خان حوصله

افزائي شروع کړه - او دغځه ته ئے د خپل امداد او حمایت یقین ورکړو - بهرام خان اګر چه په اصل کښے د خپل ورور مخالف او د دغځه د منصب خواهشمند وو - لیکن په دغه ورځو کښے ئے ورور د حکومت منصبدار او دختکو د قبیلے سردار وو - نو دغځه په مغل حکومت د خپلے وفادارئ د ظاهرولو په غرض د خپل پلار سره عملي مخالفت شروع کړو - او د پلار او ځوی ترمینځه دوړوړو جنګونو یوه سلسله شروع شوه - د پلار په مخالفت کښے د بهرام خان دا جنګونه چونکه د مغل حکومت د لمسون او مرستے نتیجه وه - له دے کبله اوس خوشحال خان هم د مغلو عملي مخالفت ته آماده شو -

لکه چه وړاندے اووئیلے شول - مهابت خان د راتلو سره سم د فوځي اقداماتو په ځائے د صلح صلاحیت او سیاسي حربو نه کار واخست - دغه د باغي پښتنو سره هم د صلح په غرض خبرے اترے شروع کړے - چناڅه په دغه ورځو کښے خوشحال خان ته د دریا خان افریدي د لوری نه د مغلو سره د صلح کولو په غرض پیغام راغللو - او دغه ئے جرګے ته بللے وو - دایمل خان او دریا خان دواړو صلح ته نیت وو - هغوی خپل نمائندګان جمرود ته رالیږلی وو - خوشحال خان هم خپل مشر ځوئے اشرف خان دے جرګے ته اولیږلو - وے جرګه کامیابه نهٔ شوه - او صلح او نهٔ شوه - د دے نه پس خوشحال خان د مغلو سرګرم مخالفت ته اماده شو - د دغځه دا اراده د دے نظم نه ښکاره کیږي - ے

پرورده که د مغلو په نمک یم
د اورنګ له جوره هم له غریوه ډک یم

په ناحق ئے په زندان کړم یوځو کاله
خدائے خبر دے که په خپله ګناه شک یم

پښتنو سره زړهٔ تور دے د مغلو
خبردار ئے په نیتونو یک په یک یم

که سره که نا سره را ته معلوم دی
په دا کار کښے په معنیٰ لکه محک یم

هغه ژیست چه د عزت له مخه نهٔ وي
چه ئے کا په هغه ژیست پورے هک پک یم

په خپل نام ونګ چه راشم لیوُنے شم
خبردار کله په سودوزیان د ډک یم

اورئے پورے په منصب په نوکرئ شه
چه تر فهم و تر نظر د مغل کک یم

هر پښتون چه د مغلو نوکری کا
که دِ زده د هغو واړو بهترک یم

پښتانهٔ لره شړئے اندیږے نبس دے
نهٔ په فکر د مسند نهٔ د توشک یم

چه منصب ے د مغل خوریږو ملک وم
چه منصب د مغلو نشته اوس ملک یم

د فرمان د پروانے حکم ے ئے نشته
شکر دا چه په خپل حکم په خپل وک یم

آزادي ده پهٔ ساده سپینه جامه کښے
خلاص د غمه د زربفت و دمیک یم

د وښو جونګړے هسے را ته بنے شوے — وائے ناست په محلونو د آنهسک ټیم
که اوکره د بتهو شته په شوملو سپینه — د مغلو پلاو و پاتے ډیر پرے ډک ټیم
که ے عمر په شماره د دیرشو تیردے — لا په کارکښے د سورلئ لکه اوزبک ټیم

دافغان په ننګ ے اوتړله توره
ننګیالے د زمانے خوشحال خټک ټیم

د مهابت خان په ګورنر کولو کښے د شهنشاه دا مدعاوه چه دے به د پښتنو داسے غوږونه تاوکړی چه د خیبر د حادثے تلافی به پرے اوشی ـ او د حکومت اقتدار به د پښتنو په علاقه بیا بحال شی ـ ولے مهابت خان داسے اونۀ کړل ـ هغه په مجموعی طور د رواداری نه کار واخست ـ او په څه لویه پیمانه ئے د پښتنو برخلاف د فوځی اقداماتو نه احتراز اوکړو. البته هغۀ د خوشحال خان د خامنو ترمینځه اختلافاتو ته هوا ورکړه ـ او بهرام خان ئے د پلار مقابلے ته اودرولو ـ او په خپله کابل ته لاړ ـ د خوشحال خان په حق کښے د مهابت خان د دے پالیسئ نتیجه دا شوه ـ چه خوشحال خپل ځان د مغل حکومت د وفادارئ نه ازاد اوګنلو ـ او تر دے وخته چه هغۀ خپل ځان د خفګان باوجود د عملی مخالفت نه ژغورلے وو ـ اوس په عملی مخالفت اماده شو ـ د مغل حکومت برخلاف اولنے اقدام هغۀ داسے اوکړو ـ چه د نوښار په کوټ ئے حمله اوکړه ـ دا حمله د خوشحال خان په سرکردګئ کښے د خټکو او افریدو یو مشترکه لښکر کړی وه ـ په جنګ کښے د حکومت ډیر سپاهیان اووژلے شول ـ د قلا دروازه ماته کړے شوه ـ او د حمله آورو په لاس ډیر مال او سازوسامان راغے ـ د قلا د وهلو نه پس خوشحال خان نظام پور ته لاړ ـ د دے نه پس خوشحال خان د مغلو مخالفت ته په یو مخه ملا اوتړله ـ او په دے لړکښے ئے نۀ په توره کمے اوکړو ـ او نۀ د خپل قلم په استعمال کښے ـ

د پښتنو په حقله چه مهابت خان کومه پالیسی اختیار کړی وه ـ شهنشاه په هغے مطمئن نۀ وو ـ چنانچه شهنشاه پښتنو ته د سزا ورکولو په غرض شجاعت خان او مهاراجه جسونت سنګه چه د جمرود د علاقے فوځدار وو ـ د یو لوئے فوځ سره مقرر کړو ـ دا دواړه جرنیلان د هندوستان نه د پیښور په لور راروان شول ـ او چه پیښور ته راورسیدل ـ نو د مهمندو په لار کابل ته روان شول ـ په دغه ورځو کښے خوشحال خان او دریا خان افریدی په کوهاټ باندے د یو مشترکه حملے تابیا کوله ـ چه مغل فوځ ته د کړپے حادثه پیښه شوه ـ واقعات داسے وو چه کوم وخت مغل فوځ د کندهاو په کڅئ کښے د کړپے په دره تیریدو نو دغه وخت

پرایمل خان حمله اوکړه - دا حمله د شپې په توره تیاره کښې شوې وه - د ژمي موسم وو. په توره تیاره کښې یو طرف ته هندوستاني فوځ د لارو کودرو نه ناواقف د ژمي یخنۍ ترټولو او بل لور ته پرې پښتنو د کاڼو او ګولیو باران ورولو - شجاعت خان د خپل شجاعت په مظاهره کښې څه کمے او نه کړو - ولے د پښتنو حملے شاهي فوځ ډیراوزپلو - سحر وختي بیا پښتنو حمله اوکړه - او دیو سخت خونړۍ جنګ نه پس مغل فوځ تیښته اوکړه - شجاعت خان په جنګ کښې اووژلے شو - او مهاراجه جسونت سنګه په تیښته ځان خلاص کړو - او پېښور ته راغے -

د کړپې حادثے د حکومت اقتدار ته نوره هم لویه صدمه اورسوله - دے واقعاتو شهنشاه په دے خبره مجبور کړو چه د پښتنو د مهم واګے په خپل لاس کښې واخلي - چنانچه هغه په دے اراده په کال ۱۶۷۴ء کښې د دارالخلافه نه راروان شو - او لاهور ته راغے - په دغه وخت خوشحال خان په تیراه کښې وو - لاهور ته د شهنشاه د رارسیدو خبر تیراه ته هم اورسیدو - دغه وخت چه د خوشحال خان کوم تأثرات وو - هغه د دے نظم نه څرګندیږي -

ے

چه په خوا نهٔ په خاطر هسے عیان شي — څنګه څه چارے پیدا په دے جهان شي

په لاچئ په ځوتره اوګرځید لم — اوس مے ګشت دا فریدیو په میدان شي

لکه بازپه بوغرګرځئ بل ته ګوري — بیا نظر زما د سوات په کوهستان شي

د مغل منصب مے پرے بنود هسے خوښیږم — لکه خلاص له لوئے زندان نه بندیوان شي

دا نادره عقیده لکه زمـــا ده — لا عجب که بل پیدا هسے افغان شي

و مغل و ته به هسے کارښکاره کړم — چه راضي راسره روح د فرید خان شي

که مے چرے ننګیالي په لاس کښے کښیوزي — پرے به لرے دا زما د زړهٔ ارمان شي

اورنګزیب بادشاه زړهٔ ډک په لاهور راغے — ګوره ګانده به څوک وران څوک به ودان شي

په جهان د ننګیالي دي دا دوه کاره — یا به اوخوري ککرئ یا به کامران شي

د باغونو د زاغانو مصاف وینم — تر دامنهٔ به ئے د وینو رود روان شي

عاقبت به خدائے ظفر کا د بازانو — تار په تار به اواره واړه کارغان شي

چه وکار ته ئے امیران دي دا خولږ دي — ډیر عالم به و خوشحال وته حیران شي

د مزریو میړنتوب په لښکر نهٔ دے — مېړه ئے سر کله یواځے په خپل ځان شي

آزادي تر بادشاهئ لا تــیرے ده

چه د بل حکم دلاندے شي زندان شي

شهنشاه اورنګزیب د پښتنو د مهم د نګرانئ په غرض د لاهور نه "حسن ابدال" ته راغے ۔او دغه ځائے ډیره شو ۔ د دے ځائے نه به ئے یو طرف ته د پښتنو برخلاف فوځی مهمات لیږل ۔او په بل لورئے په پښتنو قبائیلو کښے روپئ خورے کړی وے ۔ قبائیلی سردارانو ته ئے انعامونه او جاګیرونو پیشکشونه شروع کړل ۔ چنانچه د مهاراجه جسونت سنګه فوجدار جمرود په ذریعه ئے خوشحال خان ته هم دا پیغام اولیږلو چه که هغه د بادشاه په خدمت کښے حاضرشی نو د ډیرے مهربانئ او بخششونو مستحق به اوګرځی ۔ لیکن تر دے وخته د خوشحال خان او حکومت په مینځ کښے مخالفت دومره زیات شوے وو ۔ او د طرفینو په زړونو کښے داسے بدګمانئ پیدا شوی وے چه هغه محض د انعام و اکرام یا منصب په وعدو نۀ شوے لرے کیدے ۔ دغه وخت لکه چه د خوشحال خان د دے پورته ذکر شو و نظمونو نه څرګنده ده ۔هغهٔ د خپل ځان د پاره یو لار متعین کړی وه ۔ او په دے لار هغهٔ دومره ټک کړے وو ۔ چه بیا وروستو کیدل د هغهٔ د پاره ګران بلکه ناممکن وو ۔ دغه وجه وه چه دا پیشکش نتیجه خیز نۀ شو ۔

تر دے وخته د حکومت برخلاف په سرګرم مخالفت کښے به پښتنو قبائیلو کښے افریدی شنواری د غره مهمند او د خټکو څنے خلق اودریدلی وو ۔ د خوشحال خان دا اراده وه چه ټول پښتانهٔ د مغلو په بدئ متفق کړی ۔ او لکه څه رنګ چه د هغهٔ د دے نظم نه څرګنده ده ۔ مغلو ته داسے کار وربنکاره کړی چه د فرید خان (شیرشاه) روح تر نه خوشحاله شی. په دے غرض هغهٔ د پښتنو قبائیلو د دورے اراده لرله ۔ یوسف زی لکه چه وئیلی شوی دی د ټولو پښتنو قبائیلو نه اول د مغلو سره په جنګونو ګډیا شوی وو ۔ لیکن په دغه ورځو کښے ؛؛ دوئ په دے قبائیلی جنګونو کښے شامل نهٔ وو ۔ خوشحال خان لا په تیراه کښے وو چه هغهٔ ته د سوات د یوسف زو د څنے ملکانو د لوری نه خطونه راغلل ۔ او هغهٔ ته ئے سوات ته د راتلو دعوت ورکړے وو ۔ چنانچه د یوسف زو د ملکانو په دعوت هغه د تیراه نه د سوات په نیت روان شو ۔ او د مهمند و او اتمان خیلو په لاره د مردان علاقے ته راغے ۔ خوشحال خان لا د سوات په علاقه کښے د مندړو سره په جرګو مرکو کښے مصروف وو چه هم په دغه ورځو کښے (سـ۱۶۷۵ئ) کښے شاهی فوځونو ته یوه لویه حادثه پلیښه شوه ۔ دا د "خاپش" حادثه وه ۔ چه د تباهئ په لحاظ د کړپے د حادثے نه څه کمه نهٔ وه ۔

شهنشاه اورنګ زیب د کړپے حادثے د تلافئ په غرض یو بل فوځ د مکرم خان

او شمشیر خان نوے افسرانو په ماتحتئ کښے تاکلے وو۔ مکرم خان د کړپے په لاره د خاپش مخه اونیوله۔(خاپش د گنده او نه د قطب په لور دے)۔ په خاپش کښے ایمل خان او دریا خان د دے فوځ مقابلے ته تیار ولاړ وو۔جنگ اوشو او د شاهی فوځ یوه لویه برخه تباه شوه۔ مکرم خان په خپله هم په جنگ کښے ژوبل شو۔او په تیښته با جوړ ته لاړ۔ په دے جنگ کښے د باجوړ ترکلاني هم د مهمندو افریدو په مرسته جنگیدلی وو۔ د ،، خاپش ،، شکست د مغل حکومت اقتدار ته نوره هم لویه صدمه اورسوله۔

د مندړو سره د جرگو نه پس خوشحال خان سوات ته لاړ۔او د سوات د یوسف زو سره ئے جرگے مرکے اوکړے۔لیکن په کوم مقصد چه هغهٔ دا سفر اختیار کړے وو۔هغه مقصد تر ډیره حده پوره نهٔ شو۔ د دے مقصد ناکامی د خوشحال خان د یو نظم نه څرگندیږی۔ دا نظم د خوشحال خان د جذباتو او ارادو یوه آئینه ده۔ او په تاریخی لحاظ سره هم د قدر وړ دے ځکه چه په دے نظم کښے هغهٔ د هغه جنگونو ذکر کړے دے۔کوم چه تر دے وخته د مغلو او پښتنو ترمینځه شوی وو۔ دا نظم د برمول (ضلع مردان) په مقام وئیلے شوے دے۔

بیا له کومه را پیدا شو دا بهار | چه په هر لوری ئے ملک کړلو گلزار
ارغوان دی ضمیران سوسن ریحان دی | یاسین دی ، نسترن ، نرگس گلنار
د سپرلی گلونه ډیر په هر هر رنگ شته | ولے سرهٔ لالا پکښے دی لا اوڅار
جونه موتی موتی گل بردی په گریوان کښے | د ځوانانو گلدستے دی په دستار
مغنی په چغانه ته لیندئ کیږده | په نغمو په پردو او غواړه هر تار
ساقی راشه د کے پیالے را کړه | چه د مټیو په مستئ کښے شم سرشار
پښتنو گلمیټو بیا لاسونه سرهٔ کړل | لکه باز منگلے سرے کړه په ښکار
سپینے توره ئے گلگونے کړے په وینو | په اسمار کښے شگفته شو لاله زار
ایمل خان دریاخان دواړه مرکے ئے نه وه | هیڅ تقصیر دواړو او نهٔ کړو وار په وار
د خیبر دره ئے سره کړله په وینو | په کړپه ئے هم روان کړو د ندوکار
ترکړپے تر باجوړه سمه عروسنه | په لړزه په زلزله شو بار بار
په هغه لوری چه کیږی ئخم کال دے | هره ورځ د سپینو تورو خر پهار
چه په دا لوری زهٔ راغلم حبطه شوم | زهٔ مردار یم که داخلق دی مردار
په لښکر لښکر نارو شوم ورته ستړے | دا کا نهٔ را ته مهیرک وائی نهٔ څار

چه احوال د یوسف زو راته معلوم شو    لواغر و ما ته ښهٔ وو نهٔ د مغار

دختکو سپے بهتر تر یوسف زیو    که ختک هم د[illegible]ی په خوی ترسپی بیکار

درست پښتون د قندهاره ترا تکه    سره یو په کار دپټ یته و اشکار

گوره څو جنګونه اوشول په دا لوری    ولے هیڅ د یوسف زیو نشته عار

اول جنګ د لوړے شا د تهترے وو    چه څلویښت زره مغل شول تار په تار

څوټینده لونهٔ بندی د پښتنو شوے    اس، هاتیان، اوښان اولجه قطار قطار

دویم جنګ میرحسنی په دوآبه کښے    چه ئے سر و تکیدهٔ لکه د مار

بیا له پسه د نوښار د کوټ جنګ وو    چه ے وښکو د مغلو خپل خمار

بیا له پسه جسونت سنګه شجاعت خاں وو    چه ایمل ئے په کنداب اووبیست د مار

شپږم جنګ مکرم خان شمشیرخان دواړه    چه ایمل کړل په خاپش کښے تار په تار

چه زما په یاد دی لوئے جنګونه دا دی    د هلکو په هر لوری نشته شمار

همیشه فتح نصرت دے لا ترا اوسه    پس له دے ده بیا تکیه په کردګار

اورنګ زیب راته یو کال اوشو چه پروت دے    په صورت حیران پریشان په زړهٔ انګار

کال په کال امرایان دی چه پریوزی    چه طوفان شولے لښکرے کوم ئے شمار

خزانے د هندوستان دی راخورے شوے    سرهٔ مهران دی ښوځی په کوهسار

بله هیڅ لیدلے نهٔ شی په دا مینځ کښے    یا مغل له مینځه ورک یا پښتون خوار

په دا هسے وخت چه وخت د نام و ننګ دے    دا بے ننګه پښتانهٔ کاځه رفتـــار

پښتانهٔ په توره ښهٔ دی تر مغلو    که په پوهه پښتانهٔ وے څه هوښیار

اولسونه چه سندو بله یو کا    بادشاهان ورته سجود کاندی اختیار

که نفاق، که اتفاق که جهل پوهه    د هر یو په خپل خپل لاس ده هره چار

افریدی، مهمند شنواری گوره څه کا    د مغلو لښکر پروت په ننګرهار

زهٔ تنها پکښے په غم د نام و ننګ یم    یوسف زی په فراغت په کښت وکار

اوس چه هسے بے ننګی بے ناموسی کا    عاقبت به ورښکاره شی خپله چار

مرګ زما په پوهه ښهٔ تر دا ژوندون دے    د عزت سره چه نهٔ وی زیست روزګار

همیشه به په جهان کښے ژوندے نهٔ وی    د خوشحال ختک به پاتے شی یادګار

د دریے خوز اول کال د غنو وو (سنه ۱۰۸۶)

ماچه وے په برمول کښے دا اشعـــار

لکه څه رنګ چه د دے نظم نه څرګنده ده ـ خوشحال خان اګر چه د یوسف زو په دعوت سوات ته تلے وو ـ لیکن هغهٔ د حکومت برخلاف د یوسف زو مندړو په څه موثره مرسته کښے کامیاب نهٔ شو ـ د دے مختلف وجوهات وو ـ یوه وجه خو ئے دا وه چه د یوسف زو او ختکو ترمینځه مخالفت ډیر پخوانے او قدیمی وو ـ او اګرچه د خوشحال خان د اسارت نه پس د یوسف زو او خوشحال خان تعلقات خوشګوار شوی وو ـ بیا هم د دے جړے تر لرے پورے رسیدلے وے ـ په دے موقع د حکومت له خوا هم دے قدیمی مخالفت ته بیا هوا ورکړے شوه ـ او د حکومت د پروپیګنډے په وجه د اولس په زړونو کښے د دے یاد تازه کړے شو ـ د دے نه علاوه هسے هم په پښتنو کښے د یوے قبیلے د ننه دشمنئ او ترګنئ هم موجودے وے ـ او د دے ترګنیو له کبله دوئ په یو مشترک مقصد نهٔ شی راغونډیدلے ـ او د دے ټولو نه اهمه وجه د حکومت دولت وو ـ کوم کار چه د شهنشاه فوځونو سر ته نهٔ شو رسولے هغه د ذرو په زور سر ته اورسولے شو په دے ورځو کښے د حکومت په مقله راځ عامه موافقه وه ـ او په عام اولس د خوشحال خان د نام ونګ اپیلونو او د پښتنولئ پیغورونو څه خاص اثر نهٔ لرلو ـ دا هم ممکنه ده چه د حکومت د یوسف زو آویزش ډیر پخوانے وو ـ او د هغه وخت نه شروع شوے وو ـ کوم وخت چه نور پښتانهٔ قبائیل په مجموعی حیثیت کښے په قلاره وو ـ د حکومت سره د دے اویزش په وجه د یوسف زو علاقے ته ډیر نقصان رسیدلے وو ـ او هغوی ستومانه شوی وو ـ او د دے خلقو د مقاومت او مقابلے طاقت تقریبًا تقریبًا ختم شوے وو ـ دا هم امکان لری چه په دغه ورځو کښے چه د حکومت برخلاف کوم شورش پور ته شوے وو ـ د هغے د قیادت واګے د مهمندو افریدو او ختکو په لاس کښے وے ـ او چونکه په پښتنو قبائیلو کښے د یوسف زو قبیله ډیره اهمه او لویه ده ـ نو د قبائیلی افتخار او تعصب جذبے به هم داخلق په یو داسے تحریک کښے چه د هغے واګے د نورو په لاس کښے وے عملی اقداماتو ته نهٔ وی پرے ښودلی ـ به هرحال د دے وجوهات چه هرڅه او ګڼلے شی ـ دا واقعه ده چه خوشحال خان چه د یوسف زو سره کوم تعلقات وابسته کړی وو ـ هغه پوره نهٔ شول ـ

شهنشاه اورنګ زیب په کال ۱۶۷۵ء کښے دارالخلافے ته واپس لاړ ـ دغه وخت په مجموعی حیثیت کښے د حکومت په حق کښے حالات سازګار شوی وو ـ د یوسف زو لویه قبیله د خوشحال خان د کوششونو باوجود هم د حکومت سرګرم مخالفت ته تیاره نهٔ شوه ـ په دے

قبیله کښې د باکو خان څوځ د حکومت جاګیر قبول کړے وو۔ په افریدو کښې هم د حکومت د مرستیالو ډله پیدا شوی وه۔ بنګښ د وړاندے نه د حکومت په مرسته ولاړ وو۔ د خوشحال خان په خپله کورنۍ کښې شدید اختلافات پیدا شوی وو۔ او د دے اختلافاتو په وجه د ختکو قبیله په دوؤ ډلو کښې تقسیم شوی وه۔ ولے د حکومت دا کامیابي د فوځي غلبے په زور نهٔ وه۔ بلکه دا د شهنشاه د سیاسي تدبیرونو نتیجه وه۔ په دے حالاتو کښې د وطن د دوستۀ او آزادی خوا پښتنو مایوسي لازمي وه۔ او دا مایوسي د خوشحال خان د خپل کلام نه څرګنده ده۔ ے

پښتانهٔ په عقل پوهه څه ناکس دی کوته سپي د قصابانو د حوس دی
بادشاهۍ د مغلو په زور باټیله د مغل د منصبونو په هوس دی
اوښ د بار سره په کور کښې ورغلے په اولجه دا اوښ د غاړے د جرس دی
د نفرین لائق په نام سربنی دی۔ له اوله که دا نور وریسے پس دی
بے ننګان د بے ننګۍ کاروبار که ننګیالی د ننګ په کار کښې هر نفس دی

سرے هورے قندهار بلے د مغار دے
تر دا مینځ میشته همه واړه عبث[۱] دی

۱ عبث

په کال ۱۶۷۶ء کښې شهنشاه اورنګ زیب خپل مشر څوی شهزاده معظم ته د شاه عالم بهادر خطاب ورکړو۔ او د پښتنو مهم ئے هغهٔ ته اوسپارلو۔ د شهزاده په خصوصی درخواست میرخان میرمیران ته د امیر خان خطاب ورکړے شو۔ او هغه د ولایت افاغنه ګورنر مقرر شو۔ دا امیر خان د هغه اصالت خان وراره وو۔ کوم چه د خوشحال خان پخوانے دوست و محسن وو۔ د امیر خان او خوشحال خان ترمینځه هم دوستانه تعلقات وو۔ او د قید و بند په ورځو کښې دهٔ هم د خوشحال خان د خلاصی د پاره کوشش کړے وو۔ د غه وجه وه چه شهزاده امیر خان اټک ته راورسیدل نو امیر خان د هغه زړے دوستۍ په بنا خوشحال خان د ملاقات په غرض پېښور ته اوبللو۔ په دے ورځو کښې د خوشحال خان په کورنۍ کښې هم ډیره بے اتفاقي وه۔ د خپلے خیل خانے دے اختلاف چه د خوشحال خان جذباتو ته کومه صدمه رسولې وه۔ هغه د هغهٔ د دے شعرونو نه څرګندیږی۔ ے

نن زما په خیل خانه کښې څو مره غم شے چه حیران زمونږ په کار پورے عالم دے
ناخلف څویه ازغی کری و پلار ته د خلف څویه ګلزار د عمره سم دے
بنهٔ فرزند د پلار په خونه کښې چراغ بلشی بد فرزند د پلار په خونه کښې تورتم دے

د قابل سره به غم د ننگ و نام وی — نا قابل په غم نیولے د شکم دے
چه دا هسے رنگه سپی څنے پیدا شول — لا په شک یم چه خوشحال کله آدم دے

د خوشحال خان په کورنئ کښے د دے اختلاف نه علاوه نورپښتانۀ هم مجموعی حیثیت سره د مسلسل جنگونو په وجه ستړی شوی وو. په دغه کال بارانونه هم نۀ وو شوی او په ټوله صوبه کښے د قحط غوندے حالات وو. د دے ناموافقو حالاتو سره دامیر خان سره د ذاتی تعلقاتو معامله هم مینځ ته راغله. په دے بنا دخوشحال خان د پاره د مغلو سره په مخالفانه سرگرمئ جاری ساتلو کښے ډیرخرڅونه وو. دغه وجوهات ووچه هغه دحالاتو نه دبے وسئ په وجه په مات زړۀ د شهزاده او امیرخان د ملاقات په غرض پېښور ته لاړ. امیرخان د پېښور نه تلے وو. او د لنډی خانے په مقام د شهزاده استقبال په غرض مقیم شوی وو. خوشحال خان دشهزاده سره ملاقات اوکړو. اوکوم وخت چه شهزاده کابل ته روان شونوخوشحال خان هم دامیرخان دملاقات په غرض د هغۀ سره لاړ. صوبه دارامیرخان دلنډی خانے په مقام دشهزاده استقبال وکړ او دخوشحال خان سره ئے هم دگے ملاقات اونشو. شهنشاه اورنگزیب چه د شهزاده په خدمت کښے دخوشحال خان د تلو نه خبر شو نو هغۀ شهزاده ته اولیکل چه په هر دستور چه وی خوشحال خان رضا کړه. او دمنصب په قبلولو ئے اماده کړه. د دے په خقله د خوشحال خان سره خبرے اترے اوشوے. ولے خوشحال خان دے ته تیار نۀ شو. او شهزاده ته ئے اووے چه د شهنشاه د لوری نه په ما ظلم شوے دے. که چرته ته خدائے بادشاه کړے نو که بوډا یم نو هم به ستا خدمت کووم. حقیقت دا دے چه مغل حاکمان د پښتون قام د ذهنیت او نفسیاتو نه ناخبره وو. پښتون خپله بے عزتی په هیڅ دستورنۀ هیروی. او خپل هود په هیڅ دستورنۀ پریږدی. دخوشحال خان د ذاتی او خاندانی خدماتو په بدل کښے چه د هغۀ کومه بے عزتی شوی وه هغې د هغۀ زړۀ ته دومره صدمه رسولې وه. او د هغۀ زړۀ داسے ټوټے شوے وو. چه دا ټوټے دانعام واکرام یا منصب په سلیښن بیا نۀ شوے پیوندیدلے. دغه وجه ووچه هغه مغلو د منصب نه اغیرلے وو. لکه چه وائی. ے

که خوشحال پنځ هزاری کا مۀ ئے وینه — د مغل د نوکرئ دے اغیرلے

به هر حال دا حقیقت دے چه د شهنشاه د لوری نه په څو موقعو دخوشحال خان دخفگان لرے کولو کوشش شوے وو. په دے موقع هم شهزاده، صوبه دار امیرخان او نورو امیرانو د خوشحال خان ډیره دلجوئی او عزت افزائی اوکړه. او اگرچه د صوبه دار امیرخان دا خواهش ووچه خوشحال خان د هغۀ سره کابل ته لاړ شی. ولے هغۀ د

دے نه معذوری ظاهره کړه۔ او بیرته خپلے علاقے ته راغے۔

د شهزاده شاه عالم ملاقات ته چه دکومو مجبوریو له کبله خوشحال خان غاړه اینبی وه ۔ او دخپل مقصد په ناکامئ چه دهغهٔ دل و دماغ ته څومره صدمه رسیدلی ده هغه ددے شعرونو نه څرګنده ده۔ ے

دبے ننګه پښتنو له غمه ما ۔۔۔ لویه پرینښوه او ... نیوله کمه ما

دا هم ښه کا په دا کارکښے هومره کارشے ۔۔۔ چه که واخست انتقام له کرمه ما

چه د ننګ ګوهرے مات شو دواړه سترګے ۔۔۔ په ژړا نهٔ کړے یو دم بے نمه ما

هغه درے په لاس نهٔ راځی بیړی ۔۔۔ ایستاده کړه په ساحل له یمه ما

هغه ملاے چه په هوډ لکه تورغروه ۔۔۔ په ناکام کړه و مغل ته خنبه ما

هم دبخت وماته شاشوه هم دخلقو ۔۔۔ په مغل کړو څکه ځ له دمه ما

که ے لاس وے په رضا به ے کینښول ۔۔۔ دمغل په لوری دوه قدمه ما

د هغو له خلے کړے خبرے اورم ۔۔۔ چه خبره ورته نهٔ کړه سمه ما

سل غنداے پیغورونه را دوڅار شول ۔۔۔ چه به څان ساته همیش له فمه ما

په هغو لویو خبرو شرمساریم ۔۔۔ چه هرچا وته ایستے له فمه ما

داالم دهیڅ الم سره سم نهٔ دے ۔۔۔ که لیدلی دی هزارالمه ما

مګر بخت راسره بیا مدد آغاز کا

چه فارغ کا له اندوه له غمه ما

اګرچه خوشحال خان دشهزاده په خدمت کښے حاضرشوے وو۔ او د صوبه دارامیر خان د لوری نه هم په ابتدا کښے د صلح صلاحیت د فضا پیدا کولو کوشش شوے وو۔ لیکن دا حالت تر ډیرے مودے قائم پاتے نهٔ شو ۔او د ننګرهار په علاقه کښے بیا دمغلواو پښتو ترمینځه جنګونه شروع شول۔ لیکن د امیر خان د صوبه دارئ په وخت کښے د پښتنو په جمعیت کښے انتشار پیدا شو۔ اودا د امیر خان د سیاسی دوراندیشئ نتیجه ده۔صوبه دار امیر خان ددے خبرے کوشش اوکړو ۔ چه اول د پښتنو اعتماد حاصل کړی ۔ هغه په دے خپله پالیسئ کښے دومره کامیاب شو ۔ چه پښتانهٔ خپلو کښے اولګیدل ۔ مرئ په مرئ شول۔ او هر فریق به هدایات د امیر خان نه موندل ۔ ددے نتیجه دا شوه چه هغه قبایلی اتحاد و طاقت چه د اورنګزیب فوځونهٔ څو کاله بے بنده کړی وو۔بیخی ختم شو۔ د امیرخان په دے پالیسئ کښے دهغهٔ یو امیر عبدالله خان (خویشکی) اودهغهٔ

دخپلې بنځې (صاحب جي) چه د علي مردان خان لور او يو ډيره قابله ميرمن وه لويه برخه وه. شهنشاه اورنګ زيب هم د اميرخان د کارګزارئ نه ډير مطمئن وو. چنانچه صوبه دار امير خان شل کاله د ولايت افاغنه ګورنر پاتے شو. د پښتنو د دے بے اتفاقئ شکوه خوشحال خان هم ځو ځايه په خپل کلام کښې کړې ده. د هغهٔ په خيال کښې د پښتنو د ناکاميابئ وجه د دوئ نا اتفاقي وه.

لکه چه وړاندے وئيلي شوي دي. د اشرف خان او بهرام خان ترمينځه د حصول اقتدار په غرض کشمکش جاري وو. دا دواړه ورونه که په خپلو کښې مخالف وو. نو د پلار نه هم مخالف وو. ځکه چه د دواړو ورونو مقصد د حکومت مرسته او اعتماد حاصلول وو. پلار هم د دے دواړو نه ناراض وو. د هغهٔ دا خفګان د هغهٔ ديوے اوږدے قصيدے نه ظاهر دے. دا قصيده هغهٔ په سنه ۱۰۹۱ه کښې وئيلې ده. په دے قصيده کښې هغهٔ اشرف خان داسے ستائيلے دے. ــ

چه په واړو کښې ارشد دے     نن يادېږي اشرف خان
دمور پلار نيکهٔ ته نهٔ دے     دا ناکس دے له بل شان
په ژوندون ئے خپل ځائے ورکړو     باندے زهٔ شوم مهربان
زرے ئے تول کړل په لکونو     طبيلے ئے عراقيان
لوئے زما په نوم په توره     خواره وي ئے فرزندان
بد خواهانو سره خاندي     په زړهٔ چوي ئے نيک خواهان
بنه کارونه چه زما وو     يا زما د دو دمان
يو په دهٔ کښې پيدا نهٔ شو     ورته خلق دي حيران
دے نامرد له نامردئ     تل له ورونو نه ترسان
بنهٔ لائق ځويه ئے نور دي     ولے خدائے کړل کشران
زين د زرو په خر پروت دے     په بنهٔ اس باندے پالان
قسمت خپلے چارے کاندي     نهٔ علاج شته نه درمان
تربيت زما په دهٔ وو     په ښوره باندے باران
سرتر پايه وهم ويره     په خپل ځويه بدګمان
لکه دے دے په حسد کښې     بل به نهٔ وي هيڅ انسان

ليکن د اشرف خان او بهرام خان ترمينځه دا فرق ووچه اشرف خان په ځرګنده

د پلار مخالفت ته ملا نهٔ وه تړلې. اوکله به که ئے د پلار څخه نافرمانئ اوکړهٔ نو بیا به ئے د هغهٔ نه معافي او غوښتله. لیکن بهرام خان عملاً د پلار مخالفت ته تیار شوے وو. او د مغلو په حمایت کښې ئے د پلار په نیولو هم صرفه نهٔ کوله. په پوره ته قصیده کښې د بهرام خان نوم څرګند نهٔ دے. لیکن د دے قصیدے په څنې شعرونو کښې چه کوم خیالات ظاهر شوی دی. ډیره قرین قیاس ده چه هغه هم د بهرام خان په حقله دی. هغه شعرونه دا دی. ــــ

زما څوی له ما نیسی اقربا برادران
زهٔ هم د دهٔ په کارخندان یم دے زما په کار خندان
چه زما له غمه واوړی بے حسابه شی شادان
چه زما سره بدی کا پرے رحمت که مغلان
نهٔ په ملک یم نهٔ په مال یم خپل عزت دے په ما ګران
خدائے ئے خوار په دین دنیا کا د عزت ئے کا نقصان
څنے سپی ئے راپسے کړل په تیری کښې به دهان
نن به هیڅوک هسے نهٔ وی لکه زهٔ په زړهٔ پریشان
که کښېنیم ننګ و ناموس څي که پاسم پاسی طوفان
په دے کشمکش کښې تیرشو په ما عمر رائیګان
پښتنو اوکړئ ګمتنے زما کور دا هسے وران
دیو سړی شامت دے چه خوار یږی درست جهان
د ګمتنے وخت تیریږی واویلا افغان افغان
مناجات دِ ئے نصیب شی یا ئے تورمارجانستان
چه هیڅوک پرے بدنام نهٔ شی هسے ګورته شه روان
لکه عاق دے عاق دِ د روی
دین دنیا د واړه خسران

د صوبه دار امیرخان په عهد کښې اګرکه خوشحال خان د هغهٔ د دوستی په خاطر یاد حالاتو نه د مجبورئ په وجه د عملی سرکښئ اراده نهٔ لرله لیکن هغه د مغلو ملازمت هم نهٔ قبلولو. د دغه وجه وه چه صوبه دار امیرخان د هغهٔ نه مطمئن نهٔ وو. اشرف خان که د مغلو منصبدار او په ظاهره کښې د پلار

نه مخالف او د هغهٔ د پالیسیٔ نه ویزاره وو- ولې په څرګنده ئې د پلار مخالفت ته ملا نهٔ تړله - او کله چه به ئې مخالفت اوکړو نو بیا به ئې د پلار نه معافي او غوښتله ولې بهرام خان د مغلو منصب ته ډیر لیواله وو - په دے لړکښے هغهٔ د ورور لحاظ کولو او نهٔ د پلار - ځکه مغل حاکمانو بهرام خان د خپل مطلب سړے ګڼلو - او د اشرف خان په رویه بے اعتباره وو- چنانچه په سن ۱۰۹۳ھ کښے صوبه دار امیر خان د بادشاه په اجازت اشرف خان په پیښور کښے ګرفتار کړو - او هند ته ئې بندیوان اولیږلو - اشرف خان څوارلس کاله په ګوالیار او بیجا پور کښے قید وو - او هم د قید په حالت کښے په سن ۱۱۰۶ھ کښے وفات شو[1]۔

اشرف خان هم د پلار په شان یولوئ شاعر وو- تخلص ئې هجری وو - د دهٔ اشعار ډیر پرسوز دی - خصوصاً هغه چه د قید په حالت کښے وئیلی دی - دا یو څو شعرونه د هغهٔ د اخری غزل دی چه په قید خانه کښے ئې وئیلی وو - ؎

ما هاله ماتم د ځان اوکړو په وینو  چه اټک و ته ے شا کړه په ژړا شوم
اوس به څه د وطن کاني بوټي ژارم  د رخصت سلام ے کړے ترجدا شوم
یو ناوک ے په زړهٔ لګ راوړهٔ له روه  زار و جار ے د باغ او ئه کړهٔ خطا شوم
شین فلک په هندا سورشوله هوسه  چه هودی جل په مخ زهٔ ورته شا شوم

یو پارو په دکن نشته چه ے دم کا
ګرفتار په کنج و کاد د اژدها شوم

خوشحال خان اګرچه د اشرف خان نه هم ارزده وو - لیکن د پلار ولئ د محبت تقاضا وه چه په دے ګرفتارئ هغهٔ ته لویه صدمه اورسیدله - په دے اخری عمر او داسے ناموافقو حالاتو کښے هغهٔ د مغل د انصاف او مروت نه هم مایوسه شو - او ځکه که هغهٔ د شهنشاه اورنګ زیب په حکومت کښے د ناانصافئ شکوه کړی ده - نو هغه په دے کښے ګرم نهٔ ښکاریږی - د اشرف خان په ګرفتارئ چه خوشحال خان ته څومره لویه صدمه رسیدلی وه - هغه د دے شعرونو نه څرګنده ده - ؎

په مردن پروا دار نهٔ یم  په زندان پروا دار څه یم

---

[1] د هجرت زر، سل او شپږ وو  اشرف خان چه مړ شو بیاره
«غم انده وه» د دے تاریخ شو  که حساب کړے دے شماره

یو غصه دویم بیلتون دے　　چه په اور په اوبو زهٔ یَم
اشرف خان چه راته بنکلی　　زهٔ خوخوښ په خط د دهٔ یَم
پنځه میاشت یم په بند کښے　　بابا ډیر په زړهٔ ډاډه یَم
چه فلک سره سر باسی　　په همت کښے هغه زهٔ یَم
څوپه ما خوغم د تا کړو　　چه ته ښهٔ ئے زهٔ خوښهٔ یَم
کړهٔ ئے نهٔ دی بے حکمته
زهٔ خوشحال د دهٔ په کړهٔ یَم

هم په دے ډول چه د اشرف خان د گرفتارئ نه پس بهرام خان ته میدان خالی پاتے شو نو د پلارئ دا خیال وو چه اوس به د خیل خانے دا بے اتفاقی لرے شی. دغه وجه ده چه هغهٔ په یو قصیده کښے بهرام خان ته هم ډیر پند و نصائح وئیلی دی. د دے قصیدے یو څو شعرونه دا دی. ؎

زما زړهٔ د چا نه روغ نهٔ دے بهرامه　　د هر چا سره ئے زیست دے له ناکامه
نوکری څوانی دا دواړه لکه بام دی　　په پیری کښے له ما لاړل دواړه بامه
اوس دا دواړه بامه ستا دی ننداره کړه　　غافل مهٔ شه یو زمان له صبح و شامه
څو دِ توان توفیق رسیږی بیرون مهٔ شه　　په هر دم د پښتانهٔ د ننگ و نامه
د مغلو دولت خواه اوسه څو ژوے　　و نفرو ته ئے هم کا سل سلامه
د هغهٔ به فیروزی په جهان نهٔ وی　　چه ئے وخوری د چا مالگه کا حرامه
اتفاق د خیل خانے عجب دولت دے　　په نفاق ئے واړه اوځی له ارامه
اول خپلے خیل خانے ته نظر اوکړه　　چه په لاس واړو نیولی ده څه خامه
که تل توری غشی خوری ماتے د جنگ وړی　　مرد به سور نهٔ شی په زړهٔ له انتقامه
کلیله دمنه به ترڅو کړے راشه گوره　　چه څه درے درته تو ئے کړهٔ له کلامه
چه دِ زړهٔ هغه گوهر به په کښے موے
که پرے پوهه شے د اغازه تر انجامه

ولے افسوس دے چه بهرام خان نهٔ خو د پلار دے نصیحتونو ته اوکتل او نهٔ ئے د پښتونو ننگ و شرم ته. بلکه د مغلو په حمایت کښے ئے تر شرمناک حده پورے د پلار مخالفت اختیار کړو. تر دے چه د هغهٔ په گرفتارولو ئے هم صرفه نهٔ کوله. دغه وجه وه چه پلارئے په دے وینا مجبور شو. ؎

په دا هومره قباحت اشرف عاق نهٔ شو    چه بهرام داهسې عاق شو څه حکمت دے
چه و عقل ته د دواړو نظر اوکړے    پروت د دواړو په وجود کښې حماقت دے
د بهرام تيرے په دا دے په بدئ کښې    چه لړلے د دنيا په محبت دے
لکه نيت د بهرام څه وو هسې اوشو    د سړی د چارے کل مدار په نيت دے
چه خپل پلار شړی په تورو په لښکرو    په دا هسې څو يه سل ځله لعنت دے
که څوک شته چه په داچارو نظر وکه
ځائے د پندو نصيحت ځائے د عبرت دے

سردار خوشحال خان په کال سنه ۱۶۸۹ء کښې وفات شو۔ د هغهٔ د ژوند اخری شپے ورځې په مايوسئ او ډيرو ناموافقو حالاتو کښې تيرے شوے۔ د هغهٔ ملګری ايمل خان مهمند او دريا خان افريدی دواړه وفات شوی وو۔ د پښتنو نا اتفاقی او د مغلو په جاګيرونو پسے د دوئ تلوسے۔ د اشرف خان ګرفتاری او د مغلو په حمايت کښې د بهرام خان تر شرمناکه حده پورے د پلار مخالفت۔ د خپلے خيل خانے نا اتفاقی او د خپلے قبيلے د هغهٔ نه مخالفت او روګردانی داسے صدمے وے چه د پيرئ په عمر کښې ئے د هغهٔ زړهٔ او جذباتو ته ډيرے صدمے اورسولے۔ ولے سره د دے ناموافقو حالاتو چه د هغهٔ پرے څه وس نهٔ رسيدو۔ د هغهٔ په اراده او دم خم کښې څه فرق نهٔ وو راغلے۔ اوکوم هوډ چه هغهٔ نيولے وو۔ د مرګ تر اخری سلګئ په هغې قايم وو۔ د هغهٔ د قول و فعل نه نهٔ څه کمزوری ظاهره شوه او نهٔ د هغهٔ په همت کښې څه تزلزل راغلو۔ هغه په يو وخت کښې درست پښتونخوا مغل ته خيبر کړے وو۔ ليکن د پښتنولئ په دے منډه کښې پښتانهٔ تر آخره د هغهٔ سره لا نهٔ ړل۔ د هغهٔ خپل اولاد د هغهٔ په حقله مغل شو۔ او ځکه هغه په دے وينا مجبور شو ـــ

نهٔ مے زړهٔ په سردارئ درست خوشحال دے    نهٔ زما د خيل خانے څه حال احوال دے
د ختک اولس په ننګه نهٔ پوهيږی    کارئے درست د ناديدو په خصال دے
پښتانهٔ لکه مګس وربانده ګرزی    ورته ايښے و مغل د حلوا تال دے
ايمل خان دريا خان دواړه خوردبين لاړل    اوس خو پاتے و مغل ته يو خوشحال دے
نورے واړه تکيئ واړه تار په تار شوے
اوس په مينځ کښې يو کرم د ذوالجلال دے

شهنشاه اورنګ زيب هم په کال سنه ۱۷۰۷ء کښې وفات شو۔ په دغه ورځو کښې

شهزاده معظم شاه عالم په اټک کښې وو - او د اشرف خان ځوئے افضل خان هم ورسره وو - دغه وخت د خټکو د خانئ په منصب دے مقرر وو - شهزاده چه د پلار د وفات نه خبر شو - نو هغه دهلی ته روان شو - او افضل خان ته ئے هم هغه د پلار نيکۀ زړه ذمه وارى ( د شاهى سړک حفاظت ) اوسپارله -

## د خوشحال خان او اورنګ زيب په واقعاتو يو نظر :-

خوشحال خان په خپل کلام کښې د جهانګير او شاه جهان ډيره ستائينه کړى ده - او د اورنګزيب ئے په ډيرو تيزو تندو او سختو الفاظو کښې غندنه کړى ده - ترڅومره چه د جهانګير د زمانے او خوشحال خان تعلق دے - دا ظاهره ده چه د دے په حقله چه خوشحال خان هر څه وئيلى دى هغه ددۀ د خپلے زمانے او ددۀ په چشم ديدو حالاتو مبنى نۀ دى - ځکه چه خوشحال خان د جهانګير د وفات په وخت کښې ايله د ديارلس څوارلس کالو يو هلک وو - نو د دے په باب کښې د خوشحال خان وينا د خپل پلار او نورو مشرانو نه په اوريدلى شوى رواياتو مبنى ده - اګرچه دا حقيقت دے چه د جهانګير پاليسى د خپلو پښتنو اميرانو او جاګيردارانو په باب کښې فياضانه وه - سره د دے د آزاد قبائيلو د پښتنو سره هغه جنګونه روان وو - چه اغازئے د اکبر په زمانه کښې شوے وو - اګر چه په دے زمانه کښې دے جنګونو دومره وسعت نۀ وو اختيار کړے - څومره چه ئے وروستو د اورنګزيب په زمانه کښې اختيار کړو - ليکن د دے نه دومره خو ثابته ده چه د سرحدى پښتنو په حقله چه کومه پاليسى اکبر اختيار کړى وه - هغه په خپل زور د ستور جارى وه - البته د شاه جهان په زمانه کښې نۀ صرف دا چه خوشحال خان په خپله د خټکو سردار او د حکومت منصب دار وو - بلکه هغۀ د شاه جهان د پاره ډير خدمتونه هم کړى وو - او شاه جهان د هغۀ د دے خدمتونو منّنه هم کړى وه - په دے بنا د شاه جهان په حقله د خوشحال خان په تاريخى الفاظو کښې د مبالغ امکان نۀ معلوميږى - سره د دے داستائينے ځکه دومره د اهميت وړ نۀ دى - چه دا د هغه وخت نه پس وئيلى شوى معلوميږى کوم وخت چه د خوشحال خان او شهنشاه اورنګ زيب ترمينځه مخالفت پيدا شوے دے -

په تيرو پاڼو کښې د اورنګزيب په عهد حکومت کښې د پښتنو د علاقے هغه واقعات چه د خوشحال خان سره هم ډير ژور تعلق لرى - په تفصيل سره بيان شول - دغه واقعات دى چه خوشحال خان ئے د ننګيالى خوشحال خان په نامه مشهور کړے دے - ولے ځنے داسے خلق هم شته چه هغوى د خوشحال خان او شهنشاه اورنګزيب مخالفت په

ذاتي اغراضو مبني کني - او دغه شان د خوشحال خان د لوړ شخصیت اهمیت کموي - په دې بنا د دې په حقله د واقعاتو په رڼا کښې په غیرجانبدارانه ډول تفصیلي بحث ضروري دې

د هندوستان په مغل بادشاهانو کښې اورنګ زیب یو داسې بادشاه دې چه هغه د خپلو کارنامو او پالیسۍ له کبله د ځینې مؤرخینو محبوب او د ځنو په نظر کښې معتوب دے. کوم مؤرخین چه د هغهٔ د پالیسۍ سره اتفاق نهٔ لري. په هغهٔ د برادرکشۍ، د پلار د بے احترامۍ او نظربندۍ الزامات لګوي او د هغهٔ د حکومت پالیسي د مغل حکومت د زوال باعث ګڼي - ترڅو مره چه د برادرکشۍ وغیره الزاماتو تعلق دے - خوشحال خان هم د هغهٔ په معترضینو کښې شامل دے - او هغهٔ په خپل دیوان کښې د شلو نه زیاتو نظمونو کښے په ډیرو تیزو تندو الفاظو د اورنګ زیب غندنه کړی ده -

په بل لور د مؤرخینو یوه بله ډله داسې هم ده چه هغوي د اورنګزیب په حمایت کښې د دے ټولو الزاماتو هیڅ قدر و قیمت نه تسلیموي - او دا وائي چه که اورنګزیب ورونه وژلي وو - یا ئے پلار نظربند کړے وو - نو دا هغهٔ د خپل حفاظت او مفاد عامه په خاطر کړی وو - او د مغلو د زوړ دستور نه ئے څه خلاف نهٔ وو کړي - د اکبر اخری سلګۍ د جهانګیر د بغاوت په وخت کښې ختمې شوي دي - د شاه جهان لښ هم د پلار نه د بغاوت په جرم داغداره ده - نو که چرے هغوي د دے جرمونو باوجود قابلِ مواخذه نهٔ شي ګڼلے نو اورنګ زیب ډِ ولے اوګڼلے شي؟ دا جدا خبره ده چه اورنګ زیب د تخت و تاج په حصول کښې کامیاب شو - او هغوي نهٔ وو کامیاب شوي - او که چرے د اورنګ زیب په ورونو کښې هریو د تخت و تاج په حصول کښې کامیاب شوے وے - نو هغهٔ به هم د نورو سره هم دغه شان سلوک کولو کوم چه د اورنګ زیب د لاسه دوئ سره شوے وو -

د دے مورخینو په خیال کښې د اورنګزیب پالیسي هم د مغل سلطنت د زوال باعث نهٔ ده. دوئ وائي چه د مغل سلطنت د زوال اصلي باعث هم د اکبر پالیسي وه - اکبر چه د دین اسلام په حقله کومه توهین آمیزه رویه اختیار کړی وه - او د خپل سلطنت د استحکام په غرض چه ئے کوم نوے دین د «دین الهٰی» په نامه جاري کړے وو - په حقیقت کښې د سلطنت د کمزورۍ غټه وجه هم دا وه - په دے سلسله کښې چه هغهٔ غیر مسلم عنصر سره د کومو ناجائزه رعایتونو پالیسي شروع کړی وه - د هغې نتیجه د دے طاقتونو په عروج او ترقۍ کښې څرګنده شوه - او کوم وخت چه اورنګ زیب د دے پالیسۍ برخلاف د خپلو اصولو مطابق

کار شروع کړو ـ نو هغه د دے طاقتونو د مرضئ او خواهشاتو سره متصادم وو ـ او د دے نتیجه دا شوه چه د اورنګ زیب په لاره کښے رنګا رنګ مشکلات پیدا شول ـ که چرے اکبر د خپل سلطنت د استحکام په پرده کښے د دین اسلام نه انحراف نهٔ وے کړے او د خپل سلطنت بنیادئے په اسلامی رواداریٔ او اسلامی اصولو قائم کړے وے ـ نو د اورنګ زیب په لاره کښے به مشکلات نهٔ وو پیدا شوی ـ او مغل سلطنت به په پائداره بنیادونو قائم شوے وو ـ

د اورنګ زیب په حقله موږ موافق او مخالف خیالات اولوستل ـ که چرے په غیر جانبدارانه طریقه د دے خیالاتو جاج واخستلے شی نو دا به معلومه شی چه اورنګ زیب په خپله پالیسیٔ کښے دومره ګرم نهٔ دے ـ څومره چه څنے خلقو هغه ګرم ګڼلے دے ـ

دا یو تاریخی حقیقت دے چه په خپلو ځامنو کښے د شاه جهان زیاته مینه د دارالشکوه سره وه ـ د هغهٔ د ولی عهدے اعلان ئے هم کړے وو ـ او د حکومت د تربیت په غرض به ئے اکثر د خپل ځان سره په دربار کښے ساتلو ـ لیکن د دربار دے استوګنے د هغهٔ عادتونه خراب کړی وو ـ هغه حد په صورته مغرور وو ـ په هغهٔ کښے د خپل ځان نه د یو کار شروع کولو صلاحیت نهٔ وو ـ د هغهٔ آزاد خیالی د الحاد او کفر حد ته رسیدلی وه ـ اسلام او هندو مذهب د هغهٔ په نظر کښے غبرګونی ورونه وو ـ "اُپنشد" د هغهٔ په عقیده کښے د قران ماخذ وو ـ او دغه کتاب (اُپنشد) د هغهٔ د عقیدے مطابق د ټولو اسمانی کتابونو چه قران شریف په کښے هم شامل دے سرفهرست او د توحید سرچینه وه ـ دا د شاه جهان د ولی عهد د عقیدے حال وو ـ اګرچه د عقیدے تعلق د هر سړی د خپل ذات سره وی ـ ولے د یو عام انسان او د بادشاه په حیثیت کښے ډیر فرق دے ـ یو داسے سړے چه خپل ځان د یو اسلامی تخت و تاج مالک او دعوه ګیر ګڼی ـ د داسے عقیدے سره لکه چه دارا لرله د مسلمان په نوم د بادشاه په ډول هیڅ چرے قابل قبول نهٔ شی ګرځیدلے ـ پس که چرے دارا بادشاه شوے وے نو د هغهٔ په الحاد کښے به نور هم زیاتے شوے وو ـ او مسلمانانو ته به نور هم نقصان رسیدلے وو ـ د دے نه علاوه دارا د خپل اقتدار په وخت کښے په څو موقعو دا کوشش کړے وو ـ چه اورنګ زیب د پلار په نظر کښے سپک شی ـ د اورنګ زیب په مقابله کښے دارا په خپل ځان کښے احساس کمتری محسوس کوله ـ دا ظاهره ده چه که دارا کامیاب شوے وے نو هغهٔ به هم د اورنګ زیب سره هم دغه شان سلوک کړے وو ـ

۔څه رنګ چه داورنګ زيب دلاسه د هغهٔ سره شوے وو۔ او چونکه شاه جهان هم د دارا ناجائزه طرفداری کوله۔ نو په دے سلسله کښے چه اورنګزيب کوم اقدامات کړی دی۔ د هغے نه بغير بل څه چاره نهٔ وه۔ او اورنګزيب په هغے کښے مجبور وو۔

د شجاع په معامله کښے هم اورنګ زيب ګرم نهٔ دے۔ شجاع د اورنګ زيب نه اول د حصول تخت په غرض د دارا مقابلے ته راوتلے وو۔ او د هغهٔ نه ئے شکست موندلے وو۔ او بيا ئے د اورنګ زيب مقابله هم اوکړه۔ او شکست ئے اوموندلو۔ البته د مراد او اورنګ زيب معامله ګرانه شان ښکاری۔ د مراد او اورنګزيب ترمينځه معاهده شوی وه۔ او اورنګ زيب د هغهٔ د حفاظت ځان وعده کړی وه۔ نو کيدے شی چه د مراد معامله په سياسی وجوهاتو خو جائزه اوګڼلے شی۔ ليکن په اخلاقی لحاظ سره ورته جائز وئيل مشکل دی۔ سوا د دے نه چه د مملکت د بهتری په غرض د اورنګ زيب دا فعل هم يوه مجبوری اوګڼلے شی۔

ترکومه حده چه د غير مسلم طاقتونو د عروج وخروج تعلق دے دا ظاهره ده چه د دے ذمه وار تر ډيره حده اکبر وو۔ دا د اکبر د پاليسئ نتيجه وه چه د بے ئے اورنګ زيب نه او وتلو۔ کوم خلق چه د اکبر پاليسی دانشمندانه ګڼي او دا وائی چه که اورنګ زيب هم د اکبر په شان دانش مندانه پاليسی اختيار کړے وے نو د مغل سلطنت نه به يو قوی رياست جوړ شوے وو۔ او د هر مذهب او نسل خلقو به د يو متحده انسانی قوميت په وده او نشو نما کښے مدد کړے وو۔ هندوستان به متحد شوے وو۔ او هندوستانی قوم به په ټوله ايشيا کښے اهميت موندلے وو۔ دا داسے خبرے دی چه داورنګ زيب د مخالفينو يو زوړ سبق دے۔ او په هر دور کښے د يوے مخصوصے نظريئے مؤرخينو کړی دی۔ اوکوی ئے۔

ممکنه ده چه که اورنګ زيب هم د اکبر دانشمندانه پاليسی اختيار کړے وے نو دا نتيج به حاصل شوے وے۔ ولے په دے متحده قوميت کښے به د مسلمان حيثيت په جداګانه شکل کښے داسے ختم شوے وو چه نهٔ به په هند کښے د اسلام نوم پاتے وو۔ او نهٔ د مسلمان۔ د هند د اتحاد او د متحده قوميت د حصول په غرض د مذهب اسلام دا قربانی به يو داسے قربانی وه۔ چه د اورنګ زيب غوندے يو ديندار مسلمان بادشاه هغ ته په هيڅ دستور غاړه کيښودلو ته تيار يدے نهٔ شو۔ په خلاف د دے چه که د اکبر نه پس جهانګير او شاه جهان هم داورنګ زيب په شان پاليسی اختيار کړے وے نو اورنګ زيب ته به د غير مسلم

طاقتونو د لاسه دومره مشکلات نهٔ وو پېښ شوی - او په هند کښې به یو دا سې اسلامي رياست قائم شوے وو - چه په هغ کښې به د اسلامي اصولو په رڼا کښې د غير مسلم اولس حقوق بيخي محفوظ وو - انګريزانو هم په خپل دور حکومت کښې د هند د اتحاد او متحده قوميت د نشو ونما په لړکښې د هرے حربے نه کار اخستے وو - ولے که مسلمانانو د خپلے ازادئ په جنګ کښې د دے متحده قوميت برخلاف خپل ټول کوششونه د قائد اعظم مرحوم په مشرئ کښے نهٔ وے منظم کړے نو ډير ممکنه ده چه نن به په هند کښې د اکبر د دانشمندانه پاليسئ نه هم زياته دانشمندانه پاليسي چليد له - ولے په دے پاليسئ کښې به د اسلام نوم اخستل او ځان ته مسلمان وئيل جرم وو - په دے بنا يواځے د اورنګ زيب پاليسي د مغل سلطنت د زوال باعث ګڼل درست نهٔ دی -

ليکن د دے باوجود اګرچه د شهنشاه اورنګ زيب ذاتي زندګي ډيره پاکه وه - د هغهٔ د پاکبازئ، پرهيزګارئ او د شريعت د پابندئ، د هغهٔ د شجاعت، همت، عزم واستقلال د هغه زمانے په خلقو يو ژور اثر کړے وو - د بادشاهئ په حق له د هغهٔ تخيل ډير بلند وو - د عيش و آرام د ژوند نه ئے نفرت لرلو - د سلطنت په امورلتو کښې به ئے د وړو وړو خبرو نه ځان خبردار ساتلو - ولے سره د دے ټولو خبرو بيا هم هغه يو انسان وو - او د انسان په حيثيت ئے څه کمزورئ هم لرلے - د ابتدا نه د هغهٔ تربيت په يو خاص طريقه شوے وو - د هغهٔ په زړهٔ کښې چه کومه نظريه قائمه شوی وه په هغ کښې هغه د هيڅ ترميم روادار نهٔ وو - د هغهٔ په طبيعت کښې د شک ماده هم زياته وه - دا ظاهره ده چه د شک و وسواس په فضا کښې کامیابي مشکله وی - د هغهٔ د سختے پاليسئ او د شاهی اقتدار د خد نه زيات خيال ساتلو نتيجه دا شوه چه د مملکت په مختلفو حصو کښې دا سے شورشونه اوچت شول چه هغهٔ د خپل غير معمولي قابليت او اهليت باوجود هم هغهٔ ختم نهٔ کړے شول - د هغهٔ مد نظر په ټول ملک کښې يو متحده سياسی قوت قائمول وو - ولے د دے مقصد په حصول کښې هغهٔ د دے تصور او نهٔ کړے شو - چه د نسلی او مذهبي اختلافاتو رعايت څومره او ترکومه حده پکار دے - او د سلطنت مختلف عناصر ( د مختلفو اطرافو خلقو ) لکه پښتانهٔ، راجپوت، مرهټيان او د دکن خود مختاره رياستونه په دے خپل سلطنت کښې څه رنګ او په کوم سلوک ځايول مناسب وی -

د شهنشاه اورنګ زيب په زمانه کښې د غيرمسلم طاقتونو د عروج و خروج سره زموږ څه تعلق نشته - البته مغل او پښتانهٔ دواړه مسلمانان وو - سوال دا دے چه هغه کوم اسباب

وو- چه پښتانهٔ ئے د مغلو په مخالفت مجبور کړل-

د مغلو او پښتنو اویزش ډیر پخوانے او د چنگیز خان د زمانے نه شروع شوے وو- د امیر تیمور نه پس دا دواړه قامونه په سیاسی لحاظ سره د یو بل رقیب طاقتونه وو- دا سیاسی رقابت په مؤثرا و واضح شکل کښے د پانی پت د دویم جنګ نه پس په ۱۵۲۶ء کښے ختم شو- او په هند کښے د پښتنو سیاسی طاقت تار په تار او خور وور شو- اکبر چه په هندوستان کښے د پښتنو د سیاسی طاقت وړے لوټے نیښے نښانے ختمے کړے نو هغهٔ د «روه» پښتنو ته هم مخه اوکړه- ولے د «روه» دا پښتانهٔ په اصلی معنو کښے تر دے وخته آزاد وو- د هر حکومت اقتدار و گرفت به په دوئ ډیر معمولی او برائے نام وو- لیکن کوم وخت چه اکبر د مرزا حکیم د وفات نه پس د کابل صوبه په خپل سلطنت کښے شامله کړه نو د دے نه پس ئے د قبائیلی پښتنو د ایل کولو اراده هم اوکړه- او د غه شان د پښتنو قبائیلو او مغل حکومت ترمینځه د جنګونو سلسله شروع شوه- په دے لړ کښے که په یو لور اکبر د یوسف زو سره جنګونه شروع کړل- نو په بل لور ئے د پښتنو یوه بله قبیله (خټک) د یوسف زو مقابلے ته او دروله- او د حکومت په مرسته ورو ورو دے قبیلے دومره طاقت حاصل کړو چه د پښتنو په معاملاتو او واقعاتو کښے ئے د یو مؤثرا و فیصله کن عامل حیثیت اوموندلو- او کوم وخت چه دغه طاقت د اورنګزیب په وخت کښے د حکومت سره متصادم شو نو د هغے اثر په ټوله پښتو خواړه وتو-

اوس به په دے خبره غور او کړو چه:-

الف:- خوشحال خان د شهنشاه اورنګ زیب مخالفت ولے اختیار کړو؟

ب:- ایا هغه (خوشحال خان) ذاتی مخالفت ته قومی رنګ ورکړو؟

ج:- په دے سرکښئ کښے خوشحال خان ګرم دے؟

د:- خوشحال خان چه د شهنشاه اورنګ زیب کومه غنده نه کړی ده- په هغے کښے هغه حق به جانب دے؟-

اول د دے نه چه د دے سوالونو په حقله څه اوویلے شی د پښتون قام په حقله دا خبره په ذهن کښے ساتل پکار دی چه د پښتون د ذهنیت او قامی روایاتو دا یو خاصه ده چه هوئ د حق نمک، د خپلے وعدے او پرے جنبے کلک خیال ساتی- دا حق نمک او پره جنبه چه د دوئ نه د هر څه تقاضا او مطالبه کوی په هغے دوئ اړ نهٔ دی- ولے

پښتون په خپلې وفادارۍ او پرې جنبې تر هغه قائم وي - ترڅو چه په دے وفادارۍ اعتماد کيږي - او د قدر په نظر ورته کتلے شي - ليکن که چرے د دۀ وفادارى مشکوکه اوګڼلے شي او د بد اعتمادۍ اظهار پرې اوکړے شي - او د هغۀ نمک حلالۍ ته د نمک حرامۍ درجه ورکړے شي - نو دغه وخت دے هم خپل ځان د هغه پابنديو نه ازاد اوګڼي کوم چه په دۀ باندے د اعتماد او وفادارۍ په صورت کښې عائد وے - او عائد کيدلے به - دغه وخت پښتون بيا د خپلې پښتونولۍ د ضابطے مطابق د خپل ننګ په ګټلو مجبور شي - يا داسے به اووايوچه پښتون چه خپله وفادارى د چا سره وابسته کړى که چرے د هغه معتمد عليه د لورى نه د دۀ د وفادارۍ سپکاوے اوشي - نو په دے بے عزتۍ د دۀ تحريک نفسى ډير زرمتاثر شي - او بيا په دے صورت کښې پښتون چه ترڅو خپل بدل واخلى تر هغه وخته نۀ ارام کوى او نۀ د خپل هوډ نه اوړى - نن هم د پښتنو دغه حال دے - او درے سوه کاله وړاندے خو د دوئ په دے خصوصيت کښې نور هم ډير شدت موجود وو - خوشحال خان چه کوم وخت دا وائ ـــ

څو واخلى له غليمه انتقـــام    مرد نۀ خوب کا نۀ خوراک کا نۀ ارام

چه د ننګ او د ناموس اندوهـ نۀوى    د هغۀ سرى به نۀ وى احــــترام

(او يا دا چـه)

نبۀ ځوانان به خپل هوډ پرېږدى له لاسه    که ئے سرشى د خونى زمــرى ستر ژام

که تل تورے غشى خورى ماتے د جنګ وړى    مرد به سوړ نۀ شي په زړۀ د انتقام

نو دغه وخت دے د ټول پښتون قام د جذباتو ترجمانى کوى - د خوشحال خان او شهنشاه اورنګ زيب مخالفت ته د دے پس منظر په رڼا کښې کتل بکار دى -

لکه چه معلومه ده د خوشحال خان پلار او نيکونه د مغلو وفادار او د مغل حکومت په مرسته کښې مړۀ شوى وو - خوشحال خان په خپله هم شل کاله په ډير اخلاص او وفادارۍ د مغلو خدمت کړے وو - په دے لړکښې هغۀ د حکومت د پاليسۍ کاميابولو په غرض په هيڅ صرفه نۀ وه کړى - هغۀ د خپلو پښتنو سره خوا که يوسف زى وو که افريدى د حکومت د پاره جنګيدلے وو - د حکومت په وفادارۍ کښې د هغۀ د خپلے وينا مطابق هغۀ خپل ځان مغل کړے وو - د يوسف زو په مقله هغه خپل ځان ته زهر قاتل وائ - او هغه ځکه د يوسف زو د پاره زهر قاتل وو - چه يوسف زى د حکومت نه روګردان او خوشحال خان د حکومت وفادار او منصب دار وو - او په حيثيت د يو وفادار ملازم او

منصب دار د هغهٔ دا کوشش وو. او دائ خواهش وو چه یوسف زی د حکومت په اطاعت مجبور کړی. او د غه شان په مغل دربار کښې خپل اعتماد و اقتدار نور هم زیات کړی. د هغه دا رویه د مغل حکومت په حق کښې ډیره مفیده او موزونه وه. او ځکه د هغهٔ د دے خدماتو قدر کیدلو. اګر چه دا هم ترحده درسته ده چه د خوشحال خان او یوسف زو مخالفت تر څه حده په ذاتی وجوهاتو هم مبنی وو. لیکن د دے مخالفت اغاز د حکومت د مرستے نه شوے وو. او دے مخالفت که څه ذاتی حیثیت موندلے دے نو هغه د وروستۍ زمانے پیداوار دے. او دا لازمی وه چه دے مخالفت به د ذاتی مخالفت حیثیت موندلو. سره د دے که د خوشحال خان او یوسف زو مخالفت په ذاتی وجوهاتو مبنی او ګڼلے شی. نو د راجپوتو او اوزبکو سره د خوشحال خان کوم ذاتی مخالفت وو. چه هغهٔ د مغل حکومت د پاره د تارا ګړه په مورچه د راجپوتو سره او په بلخ و بدخشان کښې د اوزبکو سره جنګونه کول؟ که د راجپوتو او اوزبکو سره د هغهٔ دا جنګونه د حکومت د یو وفادار ملازم په حیثیت او منلے شی نو د یوسف زو په حالت کښې دِدَ هغهٔ دا حیثیت ولے او نهٔ شی منلے؟.

خوشحال خان په وازکوی د خپل ځان، د خپل پلار او نیکونو په حقله د مغلو د نمک خوارۍ او وفادارۍ اعتراف کوی. او په دے نمک خوارۍ او وفاداری فخر کوی. د هغهٔ دا وینا په واقعاتو مبنی ده. دا هم واقعات دی چه شاه جهان به د هغهٔ د دے خدماتو قدر کولو. خواه که دا د سیاسی وجوهاتو زیر اثر وو او که د حق شناسۍ د جذبے ماتحت. د اورنګ زیب او د هغهٔ د ورونو د تخت نشینۍ په جنګ کښې که د خوشحال خان څه لږه ډیره حصه ده. نو هغه هم د اورنګ زیب په مرسته کښې ده. او د دے خبرے ثبوت دے چه هغه، د مغل تخت وفادار وو. د اورنګ زیب د سلطنت په ابتدا کښې د خوشحال خان په وفادارۍ د هیڅ قسم بے اعتمادۍ اظهار نهٔ وو شوے. او طرفینو ته د یو بل نه څه ګیلے شکوے نهٔ وے پیدا شوی. د دے خبرے هم څه تاریخی ثبوت نشته چه کوندے خوشحال خان د محصول د معافۍ د قانون په نفاذ کښې څه مخالفت کړے وو. اګر چه د دے قانون اثر براه راست د خوشحال خان په ذاتی مفادو پړے وتو. ولے د دے ذاتی خدماتو او د پیړو پیړو د خاندانی تعلقاتو باوجود هغه په کال ۱۶۶۴ء کښې د صوبه دار امیر خان، د هغهٔ د نائب مرزا عبدالرحیم، د خوشحال خان د خپلو ترونو او نورو مقامی سردارانو په سازش بے ګناه پښے تړلے هند ته بندیوان اولیږلے شو. د غه وخت

هم د هغهٔ دا توقع وه چه بادشاه به د هغهٔ د سابقه خدماتو خیال وساتی. او په هغهٔ چه کوم الزامات لګولے شوی دی. د هغې به تحقیق اوکړی. او د الزاماتو د غلط ثابتیدلو په صورت کښے به د هغهٔ د دے بے عزتۍ او سپکاوی تلافی اوکړے شی. لیکن د دے په بدل کښے نهٔ صرف دا چه شهنشاه اورنګ زیب د هغهٔ د معاملے تحقیق او نهٔ کړو بلکه هغه ئے بے ګناه د خود غرضه عهده دارانو په وینا محض د خپل شک و وسواس په بنا څلورکاله قید کړو. او د هغهٔ په قید ئے هم اکتفا نهٔ کوله. بلکه د هغهٔ د آل وعیال ئے په هند کښے د یرغمال په ډول ساتلو اراده ښکاره کړه. دا هم واقعات دی چه که چرے د پښتنو د علاقے ابتر حالت شهنشاه د صوبه دار امیر خان په بدلولو نهٔ وے مجبور کړے نو د خوشحال خان د خلاصی او وطن ته د راتلو هم څه توقع نهٔ وه. ولے د دے بے عزتۍ حق تلفۍ او خفګان باوجود هم خوشحال خان د حکومت نه سرکښۍ ته اماده نهٔ وو. بلکه په چپه خُله ئے د حکومت د منصب نه د کناره کشۍ اراده لرله. لیکن هرکله چه مغل صوبه دار مهابت خان بیا بیا هغه د حکومت د منصب په قبلولو مجبور کړو. او هغهٔ د دے نه انکار اوکړو. او د دے نه پس مهابت خان هغهٔ ته خپل ځوئے بهرام خان او لمسولو نو د غه وخت د خوشحال خان د پاره هم بل څه لار پاتے نهٔ وه.

اوس سوال دا دے چه د دے واقعاتو په رڼا کښے د شهنشاه اورنګ زیب د لورى نه چه د خوشحال خان سره چه کوم سلوک شوے وو. د دے په جواز کښے د خوشحال خان معترضین څه وائی؟ او که خوشحال خان په چپه خُله د احتجاج په ډول د مغلو د منصب نه کناره کشی اختیار وله. نو په دے کښے هغه ولے ګرم وو؟ د دے دومره بے عزتۍ باوجود مغل صوبه دارانو هغه بیا په ملازمت او منصب ولے مجبورولو. او د هغهٔ د انکار په صورت کښے ئے هغهٔ ته خپل ځوئے ولے پارولو؟ او که د دے په رد عمل کښے خوشحال خان هم عملی مخالفت ته اماده شو. نو هغه دِ په دے کښے ولے ګرم اوګڼلے شی؟ دا یو داسے خبره ده چه د عقل په نسبت د جذباتو سره زیات تعلق لری. کوم سلوک چه د شهنشاه د لورى نه د خوشحال خان سره شوے وو. هغې د خوشحال خان زړهٔ د مغلو د خدمت نه داسے موړ او تور کړو چه په هغې کښے بیا د مغل حکومت د وفادارۍ څه ګنجائش نهٔ وو پاتے شوے. د دے سلوک چه د خوشحال خان زړهٔ ته کوم درد رسولے وو او په کوم شدت سره چه په هغهٔ د دے رد عمل شوے وو د هغې نه دا صفا معلومیږی چه خوشحال خان به څومره په اخلاص او وفادارۍ د مغل حکومت خدمتونه کړی وی. د دے سلوک هغه

د بادشاه د انصاف نه قطعي مایوس کړو او کوم اعتماد چه د خوشحال خان او د هغهٔ دکورنئ په مغل حکومت کښې قائم شوے وو- په هغې کښې یکدم تزلزل راغے- او لکه چه چا وئیلی دی- ؎

گر صد هزار لعل و گهر می دهی چه سُود
دل را شکسته ای نه که گوهر شکسته ای

دے واقعاتو د خوشحال خان زړهٔ داسے مات کړے وو چه هغه بیا د منصب او انعام واکرام په لالچ نهٔ شو پیوند یدلے-

پاتے شو دا سوال چه خوشحال خان خپل ذاتی مخالفت ته ولے قومی رنګ ورکړو؟ او دے درجے ته ئے او رسولو چه د دے په مدافعت کښې د حکومت بهترین فوځونه تباه شول- شاهي خزانه پرے خالی شوه- او د حکومت د کمزورئ باعث شو- دا یو داسے سوال دے چه د واقعاتو په رڼا کښې پرِ ډیر غور و فکر پکار دے-

دا درست ده چه د خوشحال خان او ورنګ زیب مخالفت په ذاتی وجوهاتو مبنی وو- ولے په قامی لحاظ سره د مغلو او پښتنو ترمینځه د مخالفت بانی هغه نهٔ وو- د پښتنو او مغلو مخالفت هغه وخت هم موجود وو- کوم وخت چه خوشحال خان د مغل حکومت په مرسته ولاړ وو- او دا مخالفت د خوشحال خان نه پس هم جاری وو- د خوشحال خان دوینا مطابق اګرچه د مغلو زړهٔ پښتنو ته تور وو- لیکن باوجود په قامی حیثیت سره پښتنو د مغلو مخالفت په یو وخت کښې هم نهٔ وو کړے- او د دے وجه بین القبائیلی تعصبات او د قبائیلو خپل خپل مخصوص مفادات وو- خوشحال خان د خپل مخالفت نه پس اګرچه دے مخالفت ته د قومی مخالفت رنګ ورکولو کوشش کړے وو لیکن هغه په دے کښې کامیاب شوے نهٔ وو- د یوسف زولو یه قبیله په دے تحریک کښې شامله نهٔ وه- غوریه خیل د حکومت په مرسته ولاړ وو- بنګښ په قلاره او د حکومت مرستیال وو- د پښتنو اکثر قبائیل د دے آویزش نه متاثره وو- د خوشحال خان خپله قبیله په مجموعی حیثیت د هغهٔ په مرسته نهٔ وه ولاړه- د هغهٔ خپل ځوئے بهرام خان د مغلو په حمایت کښې د پلار په ګرفتارولو هم اړنهٔ وو- د دے وجوهات د قبائیلی نظام خصوصیات او د مغل حکومت پالیسی وه- په دے شورش کښې صرف هغه پښتانهٔ شامل وو کوم چه د مغل حکومت د پالیسئ نه دړ دیدلی وو- او دا د هغه شورشونو یوه کړئ وه چه د هغے آغاز د اکبر د زمانے نه

شوے وو۔ د دے په حقله به دا وئیل بے ځایه نۀ وی چه دا حالات د مغل حکومت د خپلو اهلکارانو پیدا کړی وو۔ دوی به داسے کارونه کول چه د هغې په وجه به په دے علاقه کښے تل بد امنی وه۔ دا یو حقیقت دے چه مغل حکومت چه په کومه طریقه په دے خلقو حکومت کولو او د دے خلقو سره چه ئے کومه چاله شرله په داسے طریقه او داسے رویه یو حکومت هم په پښتنو حکومت نۀ شی کولے۔

په حیثیت د یو دیندار او دور اندیش مسلمان بادشاه دا د شهنشاه اورنګ زیب ذمه واری وه چه هغۀ د خپل سلطنت د یو دور افتاده صوبے د خلقو د ذهنیت، رسم و رواج او قامی خصوصیاتو نه ځان خبر ساتلے وے۔ او د خپل حکومت د وسیع تر مفاد په خاطر ئے د نسلی برترئ او د حکومت د اقتدار و وقار مسئلے ته دومره اهمیت نۀ وے ورکړے۔ او د اسلامی رواداری او تالیف قلوب پالیسئ ئے اختیار کړے وے۔ ولے مغل حاکمانو چه په کومه طریقه په دے خلقو حکومت کولو۔ د هغې لازمی نتیجه به دا وه چه د دوارو قامونو ترمینځه به تل د نفرت جذبات پاریدلی وو۔ د دیرے خرابئ نه پس چه د سیاسی حربو، انعامونو او جاګیرونو په زور د پښتنو د ایل کولو کوشش شروع شو۔ د دے په ځائے که د ابتدا نه د پښتنو سره د اعتماد او رواداری په فضا کښے د نزدیکیت مخلصانه کوشش شوے وے نو یقینًا د روه دا پښتانۀ به د غیرمسلم طاقتونو په مقابله کښے د اورنګ زیب په لاس کښے یو آهنی قوت ثابت شوے وو۔ لیکن ډیر رنځ دہ حقیقت دے چه د مغلو او پښتنو په دے اوږد آویزش کښے چرے هم د صلح صلاحیت رواداری، تالیف قلوب او د انسانیت د احترام سنجیده کوشش نۀ دے شوے۔ او په دے باب کښے د افرادو په نسبت د حاکمانو ذمه واری زیاته وه۔ د پښتنو په علاقه کښے چه به مغل حکومت کوم حالات پیدا کول د هغې رد عمل به په پښتنو لازمًا کیدلو۔ دا حالات د خوشحال خان نه وړاندے هم موجود وو۔ البته د خوشحال خان د مخالفت نه پس په دے کښے سخت او شدت پیدا شو لیکن دے مخالفت نۀ د غه وخت د قامی مخالفت حیثیت موندلے وو۔ او نه د دے نه وړاندے۔ اګرچه د خوشحال خان دا ارزو وه چه د مغلو او پښتنو دا مخالفت د قامی حیثیت اختیار کړی۔ لکه چه هغه وائی:- ے

که ے چرے ننګیالی په لاس کښے کښیوزی
پرے پوره به دا زما د زړۀ ارمان شی

و مغل و ته به داسے کار ښکاره کړم

چه راضی راسره روح د فرید خان شی

لیکن نهٔ د هغهٔ په لاس کښے ننګیالی کښیوتل - او نهٔ د هغهٔ دا ارمان پوره شو -

پاتے شو د خوشحال خان په کلام کښے د شهنشاه اورنګ زیب مذمت - د دے په مقابله و هو و ئیل کافی وی چه که دا نهٔ وے نو دا به ډیره ښه وه - شهنشاه اونګ زیب چه په تاریخ کښے کومه درجه موندلی ده هغه په دے مذمت نهٔ کیږی - لیکن خوشحال خان هم یو انسان وو - او په حیثیت د انسان په هغهٔ کښے هم کمزورئ وے - د هغهٔ په خیال کښے شهنشاه د لوری نه په هغهٔ ظلم شوے وو - او داد هغه ظلم برخلاف د یو مظلوم فریاد وو - سره د دے که هغهٔ د دے مذمت نه ځان ژغولے وے نو په دے به د خوشحال خان مقام نور هم لوړ شوے وو - لیکن د انسانی فطرت د تقاضے مطابق هغه دردیدلے وو - او دا دستور دے چه له درده زوړګے خیژی -

خوشحال خان فطرتاً انتها پسند وو - کوم وخت چه د مغلو په وفادارئ کښے هغهٔ خپل ځان مغل کړے وو نو د خپلو پښتنو د پاره زهر قاتل وو - ولے چه د مغلو سلوک هغه بیا پښتون کړو - نو خپله پښتو ئے تر دے حده اورسوله چه په خپل قبر د مغلو د اسونو ګردونو پرے ښودلو ته هم تیار نهٔ شو -

---

ل چه پښتون شوم په داسے سپینه ږیره    خدائے ے بیا مهٔ کړه مغل وایم په ځیره

# دغلجیانو اقتدار

شهنشاه اورنګ زیب په کال سنه ۱۷۰۷ء کښې وفات شو. دغه وخت کښې او د دے نه پس هم اګر چه دکابل صوبه په مغل سلطنت کښې شامله وه. دا باسیند او کوهِ سلیمان تر مینځه علاقه باندے هم هسے په نوم دمغلو اقتدار قائم وو. او د دستور مطابق به د صوبے نائب ګورنر په پېښور کښې اوسیدو. ولے د میدانی علاقے نه بغیر په ټوله غرنیزه علاقه کښې د حکومت اقتدار برائے نام هم نهٔ محسوس کیدلو. په میدانی علاقو کښې هم دا اقتدار غیر مؤثر او غیر یقیني وو. ان چه دخیبر لاره هم د شاهي فوځونو د تګ راتګ د پاره غیر محفوظه وه. په دغه کال (سنه ۱۷۰۹ء) کښې په قندهار کښې غلجي پښتنو د ایران د صفوی حکومت برخلاف بغاوت اوکړو. دا بغاوت دخپلو نتائجو له مخه که یو طرف ته د ایران د صفوی حکومت د زوال باعث شو نو بل لور ته ئے بالواسطه داسے اسباب پیدا کړل چه په هند کښې ئے دمغلو سلطنت هم او رچکولو. د غلجیانو دے لنډ کنی اقتدار د نادرشاه افشار عروج ته لاره صفا کړه. او د نادرشاه عروج د ابدالی پښتنو د سلطنت د قیام باعث اوګرځیدهٔ. په دے بنا د غلجو دا بغاوت دخپلو اهمو نتائجو له مخه د تفصیل وړ دے.

لکه وړاندے وئیلی شوی دی په کال سنه ۱۶۴۹ء کښې د قندهار صوبه د مغل حکومت دلاس نه په قطعي ډول اووتله. او د ایرانیانو په قبضه کښې راغله. د دے نه پس مغل حکومت د قندهار د راستنولو په کوشش کښې کامیاب نهٔ شو. د قندهار په دے جنګونو کښې اګر چه څنې پښتانهٔ د مغل حکومت په مرسته ولاړ وو. ولے د غلجیانو او ابدالیانو اکثر خلق د ایرانی حکومت په مرسته کښې وو. او د ایرانی حکومت قابلِ قدر امداد ئے کړے وو. او شاه عباس ثانی د پښتنو د دے امداد قدر هم کړے وو. دغه وجه وه چه د قندهار دخوا او شا ټوله علاقه د ایرانیانو په قبضه کښې وه. او پښتانهٔ

د دوئ په مرسته ولاړ وو۔

شاه عباس ثانی په ١٦٦٦ء کښې وفات شو او د هغهٔ په ځائے شاه سلیمان تخت نشین شو۔ دا بادشاه اګرکه د شاه عباس غوندے نهٔ وو۔ولے د دهٔ سلوک هم د پښتنو سره بد نهٔ وو۔ د غه وجه وه چه د دهٔ په وخت کښې هم پښتنو ته د ایرانی حکومت د لاسه څه مشکلات او ګیلې شکوے نهٔ وے پیدا شوے۔ شاه سلیمان په کال(١٦٩٤ء) کښې وفات شو او د هغهٔ په ځائے د هغهٔ ځوئے شاه حسین تخت نشین شو۔ دا سړے یو عیاش او مطلب اشنا وو۔ د بل چا په فائده نقصان ئې څه کار غرض نهٔ لرلو۔ د شاه عباس اعظم د وخت نه تر دے وخته پورے چه د ایران بادشاهانو د پښتنو د تابع ساتلو د پاره کوم کوم چلونه کړی وو۔ هغه د دهٔ د رشوت خورو ظالمانو حاکمانو د لاسه برباد شول۔ د پښتنو سره د دے حاکمانو رویه بدله شوه۔ په دے ورځو کښې مغل حکومت هم خپلو خولو کښې ډوب وو۔او دومره کمزورے وو چه د ایران ورنه د حملې ویره ترهه نهٔ کیدله۔ د غه وجه وه چه دوئ په پښتنو باندے په سختیو او په ناجائزه سلوک کښې څه خطره نهٔ محسوس کوله۔ ولے دا دے حاکمانو یو زیاتے وو۔ پښتنو په مغل حکومت ایرانی حکومت ته په دے وجه ترجیح ورکړی وه۔ چه د مغلو سلوک پښتنو سره ناوړه وو۔ایرانیانو دا پښتانهٔ د تورے په زور په خپل حکومت کښې نهٔ وو شامل کړی بلکه پښتنو په خپله مرضئ د ایرانی حکومت ته غاړه ایښې وه۔ د غه وجه وه چه هرکله د شاه عباس په زمانه کښې پښتنو ته د ایرانی حکومت د لاسه شکایتونه پیدا شول نو هغوی خپله یوه جرګه د شاه عباس په خدمت کښې اصفهان ته اولیږله۔ چنانچه شاه عباس د هغوی شکایتونه سمدستی لرے کړل۔ او د هغې ورځے نه پس به د پښتنو کورنی معاملات د دوئ د خپلو مشرانو په لاس اجرا کیدل۔ د شاه حسین په زمانه کښې هم نهٔ خو پښتنو د سالانه خراج ادا کولو نه انکار کړے وو۔او نهٔ ئے څه باغیانه قدم اوچت کړے وو۔

چه د شاه حسین د حاکمانو له خوا په پښتنو ناجائزے سختئ شروع شوے نو دوئ د پخوا په شان د خپلو مشرانو یوه جرګه د شاه حسین په خدمت کښې اصفهان ته اولیږله۔ او د دے جرګے په ذریعه ئے بادشاه ته خپل شکایتونه پیش کړل۔ ولے په ځائے د دے چه بادشاه د دوئ داد رسی کړے وے هغه د پښتنو په دے جرأت ډیر خفه شو۔ او د پښتنو د شکایتونو په باب کښې ئے هم د هغه حاکمانو نه رائے اوغوښتله

د حکومو برخلاف چه دا شکایتونه پیدا شوی وو - د شاه حسین دا فعل د دغهٔ د بې عقلۍ یو داسې کار وو چه نه د دغهٔ د خپل ذات د پاره ښهٔ شو او نهٔ د ایرانی سلطنت په باب کښې مفید ثابت شو - د دغهٔ امیرانو دغهٔ ته دا رائې ورکړه چه که د دې سرکښو پښتنو تابیا او نهٔ شي - او دا چینه سیند کیدلو ته پرې ښودلې شي - نو ټول حکومت ته به پرې خلل پیدا شي - دوئ ته داسې سزا ورکول پکار دی چه د دوئ د دماغ نه د شکایتونو هلاو چل اوځي - دامیرانو په دې مشوره شاه حسین د پښتنو د سمولو په غرض د قندهار په گورنرۍ یو داسې فوځي سړې مقرر کړو - چه په ټول فوځ کښې د خپلې سنگدلۍ او ظلم په وجه مشهور وو - دا سړې گورګین خان نومیدهٔ -

گورګین خان په اصل کښې د جارجیا او مذهبًا عیسائي وو - د جارجیا خلقو د خپلې ازادۍ په غرض د ایران حکومت سره یو جنګ کړے وو - او په دې جنګ کښې گورګین خان لویه حصه اخستې وه - ولې د ایرانی فوځ په لاس کښې گرفتار شوے وو - د ایران د ملکی قانون له مخه دا سړے د قتل سزا وار وو - ولې دهٔ د مرګ نه د بچ کیدو په غرض اسلام قبول کړے وو - او په شاهي فوځ کښې نوکر شوے وو - د مسلمانیدو نه پس گورګین خان خپله نامه شاهنواز خان ، ایښې وه -

گورګین خان چه د قندهار د گورنر او مختار کل په حیثیت قندهار ته راورسیدهٔ نو د راتلو سره ئې په پښتنو داسې ناتار جوړ کړو - چه هغوی ته ئې په ورځ رڼا داسمان ستوری اوښائیل - د دې سنګدل گورنر د ظلم نه نهٔ زوړ بچ وو نهٔ ځوان - دهٔ نهٔ صرف د پښتنو بې شماره ځلمي په نهٔ څه خبره حلال کړل - بلکه د دوئ په ننګ و ناموس ئې هم صرفه نهٔ کوله - بې شماره پښتنې پیغلې ئې په زور زیاتۍ وینزې کړې - او د فوځ سپاهیانو ته ئې حواله کړې - په زرګونو خلق ئې بې کوره بې اوره کړل - د پښتنو د سپکاوی او بې رتۍ خبره چه د دهٔ په مغزو کښې راتله په هغه به ئې صرفه نهٔ کوله - د دې باوجو د پښتنو ځرګند بغاوت ته غاړه نهٔ کیښودله - او دا ئې خواهش وو چه که په صلح صلاحیت کار اوشي نو ښه به وي -

په دې غرض دوی په کال (۱۷۰۶ء) کښې یوه بله جرګه اصفهان ته اولیږله - دا جرګه هم ناکامیابه راغله - په دې موقع د پښتنو د پاره د ځرګند بغاوت نه بغیر بل څه لار نهٔ وه - د غه وخت دوئ ته د غلامۍ خوفناک انجام ځرګند شو - د دوئ په مخکښې اوس د عزت مرګ او یا د بې عزتۍ ژوند وو - او دوئ د عزت سره مرګ ته تیار شول - د دوئ دا خواهش به پهٔ

موقع پوره شوے وو۔ که چرے دروئ دقیادت واګے د میرویس غوندے مدبر او هوښیار مشر په لاس کښے نهٔ وے۔

د میرویس د پلار نوم شهالم خان وو۔ چه په غلجي قبائیلو کښے د هوتکو د څانګے مشر وو۔ د مور نامه ئے "نازو بي بي" وه۔ چه د سلطان ملخي لور وه۔ سلطان ملخ د غلجیانو د توخي څانګے یو ملک او په خپل وخت کښے د غلجي قبائیلو مشر وو۔ میرویس خان یو قابل، دیانتدار او د قام خواخوږے وو۔ د ګورګین خان د ګورنرئ نه اول د کلات ښهر په عهده مقرر وو. د خپل خانداني عزت نه علاوه د خپلو ذاتي صفتونو او د حکومتي اختیاراتو په وجه په ټولو پښتنو کښے سترګه ور او د عزت خاوند وو۔ د ګورګین خان د ظلمونو برخلاف جرګه چه د اصفهان نه ناکامیابه راغله نو په دے موقع میرویس خان خپل قام ته د صبر او زغم تلقین اوکړو۔ او هڅوی ئے د بغاوت او سرکښئ نه منع کړل۔ دا مشوره د ګورګین خان د ارادو سره متصادمه وه۔ د ګورګین خان دا غرض وو چه د پښتنو د سرکښئ څه حرکت صادر شی۔ او هغه پرے د خپل زړهٔ ارمان پوره کړی۔ ولے میرویس د هغهٔ دا اراده ناکامیابه کړه۔ دغه وخت ګورګین خان په میرویس د بغاوت الزام اولګولو۔ او هغه ئے د یو څو نورو مشرانو سره په کال ۱۷۰۷ء کښے اصفهان ته ګرفتار اولیږلو۔ په دغه کال کښے څه رنګ چه د شهنشاه اورنګزیب په وفات د هندوستان سلطنت بے وارثه شو۔ دغه شان د میرویس دا ګرفتاری هم د ایران د صفوی سلطنت د تباهئ باعث اوګرزیده[ئے]۔

د ګورګین خان د لاسه د میرویس ګرفتاری او اصفهان ته د هغهٔ لیږلے کیدل ګویا د قدرت د لوری نه د پښتنو سره په چپه خُله یو امداد وو په ظاهره کښے خود میرویس د ګرفتارئ نه د ګورګین خان مقصد دا وو چه هغهٔ ته په پښتنو په ظلم کولو کښے لاره صفا وی۔ ولے دا خبره د هغهٔ په خواخاطر کښے هم نهٔ وو۔ چه دا ګرفتاری به د هغهٔ د خپلے تباهئ باعث شی۔ د میرویس د ګرفتارئ نه پس ګورګین خان د فوځ یوه لویه حصه ایران ته اولیږله ځکه چه دغه وخت هغهٔ ته د پښتنو نه څه خطره نهٔ معلومیده[ے]۔

---

[له] د میرویس د ګرفتارئ ته په دے شعرونو کښے اشاره شوی ده۔ ے

ګورګین خبر شو چه میرخان څه ګوی
ظلم ئے ډیر کا په خوارانو د قوم
مشران ئے راوستل په حبس و په بند

وے کتله چه افغان څه ګوی
ځان ئے کاګرګ د غمخوارانو د قوم
منافقین ئے کړل په قوم سربلند
(ریښه خزانه ص۱۲۵)

میرویس خان یو بیدار مغزه پښتون وو۔ چه اصفهان ته اورسید و نوسمدستی هغهٔ ته د سلطنت کمزوری، د بادشاه بے عقلی، د امیرانو نفاق او درغلی معلومه شوه دے حالاتو د هغهٔ په زړهٔ کښے نوی تلوسے پیدا کړے۔ هغهٔ ته دامعلومه شوه چه دایران نه د پښتنو ازادول څه گران کار نهٔ دے او هغهٔ د دے خپل نوی مقصد د حصول کوشش شروع کړو۔ پهٔ دے لړکښے هغهٔ اول د هغه امیرانو سره تعلقات پیدا کړل۔ کوم چه دگورگین خان مخالف وو۔ د میرویس خان غوندے خوږ ژبانه او میلمه دوست سړی ته د هغه وخت د عیش پسند ایرانی امیرانو قابوکول مشکل نهٔ وو۔ هغه ډیر زر دلویولویو امیرانو سره تعلقات پیدا کړل۔ او د دے خپلو نوو دوستانو په ذریعهٔ دبادشاه دربار ته هم رسائی حاصله کړه۔ د دے نه پس هغه په ډیر احتیاط په خپل کارکښے لگیا شو۔ د هغهٔ دا پخه عقیده شوه چه د پښتنو د یو آزادمستقل حکومت قائمولو ډیرامکانات موجود دی۔ ولے د دے د پاره د مهلت او مناسبو حالاتو ضرورت دے۔ او د دے موافقو حالاتو په انتظار کښے هغه په خپله منصوبه کښے لگیا شو۔

میرویس خو دگورگین خان د لاسه د یو شاهی قیدی په حیثیت اصفهان ته لیږلے شوے وو۔ ولے هغهٔ ډیر زر د خپل ذاتی قابلیت په برکت د خپل ځان د پاره د بادشاه د یو اعتمادی مصاحب په حیثیت حاصلولو کښے کامیاب شو۔ هغهٔ د دربار امیرانو داسے په خپل تارداواړول چه هغوی به په هره مشوره کښے د دهٔ رائے ته اهمیت ورکولو۔ د اصفهان د قیام په دوران کښے میرویس چرے هم په صفا لفظونو کښے نهٔ خودگورگین خان مخالفت کړے وو۔ او نهٔ ئے د هغهٔ څه سپکه وئیلی وه۔ هغهٔ د قول و فعل نه دا خبره نهٔ وه ظاهره کړی چه گوندے هغهٔ دگورگین خان مخالف دے۔ میرویس به په هره موقع دگورگین خان ذکر په داسے ډول کولو چه د هغهٔ د تعریف پهلو به پکښے هم څرگند وو۔ ولے د هغهٔ د خبرو نه به د بادشاه په زړهٔ کښے دگورگین خان برخلاف شکونه او وهمونه هم پیدا کیدل۔ دغه وخت کښے د میرویس مدنظر د گورگین خان بدلول او یا د هغهٔ دظلمونو بدل اخستل نهٔ وو۔ بلکه د هغه مقصد دد ے ټول نظام بدلول وو چه گورگین خان د هغ یو جزو وو۔

میرویس خان یو مدبر او دوراندیش انسان وو۔ او یو کار به ئے هم د قسمت په اسره نهٔ پرے ښودلو۔ کوم وخت چه د ایرانی دربار کمزوری هغهٔ ته معلومے شوے

او د پښتنو د ازادولو مقصد د ډیر غور و فکر نه پس هغئ متعین کړو - نو هغئ دا غوره اوګڼله چه د حکومت ایران برخلاف د عام پښتون اولس د پاروولو د پاره مذهبي مرسته هم حاصله کړي ولې چه پښتانه په هغه تحریک کښې ډیر زر حصه اخلي چه د مذهب له خوا هم جائز بلکه ضروري ګڼلې شوې وي -

د شاه عباس اعظم او پښتنو ترمینځه دا معاهده شوې وه چه ایراني حکومت به د پښتنو په مذهبي معاملاتو کښې دخل اندازي نۀ کوي - او نۀ به د عقیدې د اختلاف له کبله پښتانۀ د خپلو مذهبي فرائضو اداکولو نه منع کوي - په دې معاهده د شاه عباس اعظم د زمانې نه د شاه حسین تر زمانې پورې عمل کیدلو - ولې د شاه حسین په زمانه کښې د ایران متعصبه ملایانو په پښتنو باندې د ایراني حاکمانو ظلمونه جائز ګڼل - او د دې ظلمونو حوصله افزائي به ئې کوله - او د دې وجه دا وه چه پښتانۀ سني مذهب او ایرانیان د شیعه مذهب پیروکار وو - د شاه عباس اعظم په وخت کښې د پښتنو شیعه مذهب ایرانیانو ته په سني مذهب مغلو ځکه ترجیح ورکړې وه چه د مغلو په دور کښې خصوصًا د اکبر په وخت کښې به د پښتنو په صوبه هندوان ګورنران مقرر کیدل - چنانچه د پښتنو په صوبه اول ګورنر هم مان سنګه مقرر شوې وو - د دې نه علاوه د اکبر د مذهبي پالیسئ نه ټول راسخ العقیده مسلمانان بدظنه وو - شاه عباس اعظم او د هغۀ نور جانشین که په خپله عقیدةً شیعه وو - ولې فراخدله او د تعصب نه خالي وو - په خلاف د شاه حسین چه دې یوکمزورې او بې مغزه بادشاه وو - د دۀ په وخت کښې بیا ایراني حاکمانو له خوا ظلمونه شروع شول - دا ظلمونه به هغوي د خپلې عقیدې مطابق جائز ګڼل - ځکه چه مظلومان سني مذهب پښتانۀ وو - ولې د ایراني حاکمانو دا رویه د هغې معاهدې خلاف وه - کومه چه د شاه عباس اعظم او پښتنو ترمینځه شوې وه -

میرویس چه په خپل خیال کښې په ایراني دربار کښې خپل کار مکمل کړو نو هغۀ د راتلونکو واقعاتو د تابیا په غرض د بادشاه په اجازت حج ته لاړ - د هغۀ نورو ملګرو ته وطن ته د تلو اجازت ورکړې شو - میرویس خان چه حج ته لاړ نو دلته ئې اول په مکه معظمه کښې او بیا په مدینه منوره کښې د عالمانو سره اولیدل - او د هغوي نه ئې د دوؤ خبرو په حقله فتوی واخستله - دا فتوی ډیره مختصره او واضحه وه - په دې کښې دوه پوښتنې شوې وې - او د هغې جواب ورکړې شوې وو - اوله خبره دا وه چه ایا هغه مسلمانانو ته چه د خپل دین د فرائضو په اداکولو کښې ناچاره دي - د تورې په زورځان

ازا دول روا دی ئ او دوېره دا ده چه که دیو قام سرداران د یو کافر بادشاه په لاس نیوه مجبور شي ـ او دلاس نیوې شرط هغه بادشاه په خپله مات کړی نو د قام ټول افراد د غه لاس نیوه ماتوونکي شي ئ ددے دوارو مسئلو جواب دا وو چه " هو بیشکه " میر ویس دا فتویٰ دځان سره وافستله - او بیا اصفهان ته راغی - مګر خپلے ارادے ئے پټے اوساتلےاو په خپل زور دستورے د بادشاه او د هغهٔ دامیرانو سره ټګ راټګ شروع کړو -

په دغه ورځو کښے د بادشاه په امیرانو کښے د میر ویس د کارسړے وزیراعظم وو - وزیراعظم دګورګین خان او د هغهٔ د ورارهٔ کیخسرو نه چه سپه سالار وو - په زړهٔ کښے ویریدلو - میر ویس خان د هغهٔ په زړهٔ کښے دا ویره نوره هم زیاته کړه - او بیا د وزیراعظم او میر ویس په کوشش د بادشاه په زړهٔ کښے هم دګورګین خان ویره کښینولے شوه - په دغه ورځو کښے اتفاقاً یو داسے خبره پیښه شوه چه د هغې نه د میر ویس مقصد ته لویه فائده اورسیدله -

په کومو ورځو کښے چه میر ویس خپل وطن ته د راتلو په تکل کښے وو - په دغه ورځو کښے د زار روس د لوری نه دایران په دربار کښے یو سفیر مقرر شو - دا سفیر په ختهه ارمنے وو - په نامه اسرائیل او وراټني وو - دے سړی د ترکو برخلاف د روسیانو ډیر مدد کړے وو - او د هغې په عوض کښے ورله شهنشاه روس د طرف نه ډیر رعایتونه ورکړے شوی وو - خصوصاً د نوکرانو او مال واسباب په حقله پرِ هیڅ پابندی نهٔ وه - او د دهٔ ټول مال واسباب د هرقسم محصول نه مستثنیٰ وو - د غه وجه وه چه د دهٔ په ملګرتیا کښے ډیر خلق د مال واسباب سره راروان وو - چونکه د روس استعماری ارادے دایرانیانو نه پټے نهٔ وے - په دے وجه د دے سفارت چرچه په یو څو ورځو کښے د ایران په اولس کښے خوره شوه - د اولس دا ګنګوسے د بادشاه تر دربار هم اورسیدے میر ویس هم د خپل غرض د پاره په دے کښے ډیر څه اوکړل - بادشاه او د هغهٔ درباریانو په دے معامله کښے د میر ویس نه هم پوښتنه اوکړه - هغهٔ په ډیرے بهترینے طریقے د دے سفارت کار په تهِ کښے پټ اغراض ، دګورګین خان او د دے سفیر نسلی او مذهبي اشتراک ، دګورګین خان حاصل کرده قوت واقتدار او بیا د دے سفیر په راتلو او د دهٔ په اشاره و هدایت دګورګین خان د بغاوت امکانات په داسے واضح ډول د بادشاه او د هغهٔ دامیرانو په ذهن کښے کښینول چه د هغوی نه ئے بند پیوند خطا کړو - نهٔ خو په بادشاه کښے د سفارت د واپس کولو طاقت وو - او نهٔ هغه ګورګین خان

دخپلے عهدے نه لرے کولے شو - اخر صلاح په دے اوشوه چه میرویس خان دِ سمدستی په خپلے ځنوانئ دکلانتر په عهده مقرر شی - او درپرده دِ دګورګین خان په حرکاتو نظر هم اوساتی - د بادشاه داخیال وو چه په دے طریقه به دګورګین خان په وسیعو اختیاراتو کښے کمے راشی - او میرویس به ئے مقابلے ته اودرېږی -

د میرویس هم دغه مطلب وو - هغهٔ دخپل تدبیر او اخلاص په برکت د استبداد په قلاء کښے شګاف پیدا کړے وو - هغهٔ په ډیرے تادئ دسیستان او کرمان په لار قندهار ته روان شو - په لاره کښے هغهٔ په پښتنو قبائیلو کښے د اتحاد و اتفاق یو نوے روح وړپوک وهلو - او هغه چه قندهار ته راغے نو د هغهٔ حیثیت د یو شاهی مجرم نه بلکه د یو لوئے قامی مشر او د حکومت د یو اعلی افسر وو - د میرویس په دے حیثیت کښے قندهار ته راتلل ، دګورګین خان غوندے ظالم او جابر بنیادم د پاره د ظلم یوه غښتلے بهانه ګرزیدلے شوه - ولے دغه وخت کښے هغهٔ دا د زهروګوټ په چپه خُله ځکه تیر کړو - چه د فوځ لویه حصه هغهٔ ایران ته لیږلی وه - مګر اوس هغهٔ د میرویس د سپکاوی د پاره یوه بله بهانه اولټوله - هغه څوورځے پس میرویس ته پیغام وراولیږلو او د هغهٔ نه ئے د ځان د پاره د هغهٔ دلور خواستګاری اوکړه - دا ظاهره وه چه دګورګین دا پیغام د هغه میرمنے په حقله د شرعی نکاح په ډول نهٔ وو - بلکه د هغهٔ غرض په خپل حرم کښے د دے میرمنے د یو هنډیوالے او داشته وینزے په شان ساتل وو -

چهٔ میرویس ته دا پیغام اورسید نو هغهٔ پښتانهٔ مشران خپلے حجرے ته راوبلل - او د هغوی په مخکښے ئے ټوله معامله پیش کړه - د هغهٔ قام چه په دے خبر شو نو ټولو د دے سپکاوی د بدل اخستلو په غرض په قرآن پاک قسمونه اوکړل - او د هر قسم قربانئ اقرار ئے اوکړو - میرویس چه د قام د مشرانو اعتماد حاصل کړو نو هغوی ته ئے دا اووے چه که چرے ستاسو زما په عقل او اخلاص اعتماد وی - نو اوس تاسو خپل ځانونه او عزت زما عقل ته اوسپارئ - او زما هدایاتو ته انتظار کوی - په دے موقع موږ ته ډیر تدبر نه کار اخستل پکار دی - غرض د قام مشرانو د میرویس سره د هر قسم تعاون او قربانئ اقرار اوکړو - او په خپل اقرار ئے د خدائے پاک کلام ګواه کړو -

د دے نه پس میرویس خان دګورګین خبرے ته غاړه کیښوه - ولے په یو بل رنګ کښے هغهٔ خپله یوه ښکلی خدمتګاره پیغله په قیمتی جامو او کالو کښے په ډول سینګار

د خپلې لور په نامه دګورګین خان حرم ته اولیږله. د دې نه پس په ظاهره کښې ګورګین خان د میرویس خان زوم ګڼلې شو. ورو ورو دګورګین خان هم د میرویس برخلاف خطرات لرے نشول. او په هغهٔ ئې اعتبار پیدا شو. او هغه به ئې په خپلو مشورو کښې شاملولو. په دے ورځو کښې یو داسې واقعه اوشوه چه د هغې په وجه دګورګین خان انجام رالنډ شو. د ترین قبیلې څنې پښتنو د خپل غربت په وجه د مالیې په ورکولو کښې څه سستی کړی وه. د هغوی دا سستی دګورګین خان د غاور طبیعت د پاره یوه کروړه شوه. میرویس هغه نور هم اوپارولو او د ترینو په ګوښمالۍ د فوځ یوه لویه حصه مقرر شوه.

میرویس د دے موقع نه فائده واخستله. څو ورځې پس ئې په خپل کلی کښې دګورګین خان میلمستیا اوکړه. دا دعوت په ډیره لویه پیمانه او دګورګین خان د شان سره مناسب وو. د ډوډۍ خوړلو نه پس په ګورګین خان او د هغهٔ په سپاهیانو بنګهٔ شراب اوڅښولے شول. او دوئ ټول په نشه کښې ډوب پرے وتل. د دے نه اول میرویس د قندهار نه ګیرچاپیره د ټګ راټګ لارے بندے کړے وے. او خپل وسله بند اعتباری سړی ئې هورے مقرر کړی وو. د تورے شپې په تیارهٔ کښې چه ګورګین خان د خپلو محافظو سپاهیانو سره د شرابو په نشه کښې ډب ډوب بے هوشه پروت وو. میرویس او د هغهٔ سړو په دوئ خپلے تورے او چړے اوکیلے. ټول ئې حلال کړل. د دے نه پس میرویس دګورګین خان جامے واغوستلے او د هغهٔ سړو دګورګین خان د محافظو سپاهیانو. او بیا په چپه خُله شپه په شپه په قلا ورننوتل. او حملته ئې د ګورګین خان په سپاهیانو تاتار جبور کړو. د دے نه پس ئې هم په هغه شپه د قندهار د خلقو په نوم یو فرمان جاری کړو. په هغې کښې دا وئیلی شوی وو چه هغه سړی ته به امان وی چا چه د جارجیا سپاهی ته امان نهٔ وی ورکړے. چونکه دګورګین د ظلم نه هرسړے دردیدلے وو نو سمدستی ټول خلق د میرویس د جنډے لاندے راجمع شول. او شپه په شپه ئې ټول ښار د جارجیا د سپاهیانو نه پاک کړو. په دغه شپه قندهار دیو اوږدے غلامۍ نه پس د میرویس په تدبیر او همت په کال ۱۷۰۹ء کښې ازاد شو. دګورګین خان د وژلو. او د قندهار د آزادۍ واقعه ریدی خان مهمند په خپله مثنوی محمود نامه کښې په دے ډول بیان کړی ده. ـــ ے

حاجي میرخان وکا تدبیر مصلحت    پښتانهٔ ټول شول په ناموس او بیعت

ټولو قرآن وکا چه ځان کاخوندی      له جور ظلمه د ظالم ارمنی
سیدال ناصر او بابوجان او بامی      بل باور خان او د بادر دلسی
میاجي هم راغ د میر خان په کومک      یوسف راټوله کړه د سیوری هوتک
عزیز نورزے د «دلا رام» پهلوان      ګل خان بابړ و بل و نوربړیځ خان
راغ نصرو د الکوزو د جلدک      کانی ځوانانو د لښکرو کومک
بل یحیی خان و بل ئے ځوئے محمد خان      ټول سره یو سول چه کړی مړ ګورګین خان
یونس کاکړ وکا یرغل په ګورګین      پښتنو جوړ کړو په ګرجیانو ناورین
ګرګین ئے مړ کا ټول ګرجي شو کشتار      بر کا خلاص له ظلم و جوره غفار
قندهار وینو ماجي میر په همت      قوم ئے راټول کا ورته ئے کړه نصیحت
چه ظالم ومړ او س خوسومویږ ازاد      خالق دِ نهٔ کا پښتون قوم برباد
باچا ظالم دے موږ ئے لوټ کا لښکر      ښائی چه وساتو ځانونه له شر
اصفهان ډک وو له لښکرو د شاه      صبا به راشی په زرګونو سپاه
نهٔ به پښتون پریږدی په مځ د جهان      ورک به کا نوم ننګه نښان د افغان
دشمن قوی دے راسئ کئ اتفاق      ځان موچمتو کئ لیرے کاندئ نفاق
په قندهار کښے ئے راټول کړل خانان      ټوله د قوم اختیار دارا مشران
هر قوم ورکړله ځوانان توریالی      ټول وو غښتلی ننګیالی توریالی
شل زره جمع شول په مینځ کښے د ښار      ګرده ولاړ وو د میر خان په ګفتار
میرخان انصاف کاو سپین بږیری مشر      قوم ئے و نه یکه ځوی او کشر
چه داسے کار وکا ماجي ګړندی      د پښتنو ناموس ئے وکا خوندی
کال د یوسل (سنه ۱۱۱۹ هـ) نولس او زر په شمار      خلاص سو له غمه د ګورګین قندهار
د ظلم پاے دے نسے وران عالمه      نهٔ دے په ظلم څوک ودان عالمه
د ظلم اور چه بل سی سوزی جهان      چه په کښے کباب شی ستمګر ظالمان

ظالم جفاکوی په ځان نهٔ په بل
وینی هر څوک سزا د خپل بد عمال[1]

د ګورګین خان مرګ او قندهار د ازادولو نه پس میرویس د پښتنو ټولے قبیلے

---

[1] پټه خزانه ص۱۲۹

راغونډې کړې ـ او هغوی ته ئې د آزادۍ برکات او په خپل مینځ کښې د اتحاد واتفاق فائدې څرګندې کړې ـ د هغوی د وړاندې د غلامۍ ذلت او نقصانات په موثره طریقه بیان کړل ـ هغهٔ د خپل تقریر په آخر کښې دا اوویل ـ.

"که چرې تاسو کښې داسې خلق هم وی چه هغوی د آزادۍ په دې لوئې نعمت چه مونږ ته خدائے پاک په اسانه نصیب کړو خوشحال نهٔ وی نو هغوی دِ ځان څرګند کړی. او زمونږ د دې جرګې نه دِ اوځی ـ هیڅوک به په هغوی غم غرض نهٔ کوی ـ داسې خلق بې شکه د دې آزاد ریاست د پولې نه بهر د یو نوی ظالم بادشاه تکل کولې شی"

د دې په جواب کښې هغهٔ ته د قام د طرف نه په یو خُله او یو زړهٔ د خپلې آزادۍ د حفاظت په لاره کښې د هر قسم ځانی او مالی قربانۍ کولو یقین ورکړې شو. او هرکله چه هغهٔ د قوم نه دا وسیع اختیارات حاصل کړل نو په دې موقع هغهٔ هغه فتویٰ چه د مکې معظمې او مدینې منورې د عالمانو نه ئې حاصله کړی وه خپل قام ته څرګنده کړه ـ او په مذهبی نقطه نګاه سره ئې هم د خپلو اقداماتو جواز د قام په مخکښې ثابت کړو ـ او د دې نه پس د ائنده اقداماتو په تابیا کښې لګیا شو ـ

هغهٔ د قلا د دیوالونو مرمت اوکړو ـ وسلې ئې جمع کړې ـ فوځ ئې بهرتی کړو ـ ولې هغهٔ ته د تیارۍ موقع هم و حاصله نهٔ شوه ـ د ګورګین خان د قتل په خلورمه ورځ هغه فوځ چه د ترینو په مهم لیږلې شوې وو بیرته راغې ـ میرویس د دې فوځ مقابلې ته شل زره پښتانهٔ اولیږل ـ ولې داسې معلومیږی چه هغه وخت پښتانهٔ په فوځی طریقه د جنګ د طریقو نه بیخی نااشنا وو ـ او یا شاید چه ورسره وسلې نهٔ وې ـ به هرحال د ګورګین خان فوځ د پښتنو د مینځ نه اووتلو ـ میرویس خان په دوئ پسې حمله اوکړه ـ او د ګرشک تر درې ئې اوزغلول ـ او ټول ئې مړهٔ کړل ـ د دې سپاهیانو نه صرف اتلس تنه ژوندی اوتښتیدل ـ او د ایران دربار ته ئې د ګورګین خان د انجام او په قندهار باندې د میرویس د قبضې غم لړلې خبر اورسولو ـ

ایرانی حکومت د قندهار دې واقع ته هم و څه اهمیت ور نهٔ کړو ـ او دا ئې یو تاریخی حادثه اوګڼله ـ د هغوی دا خیال وو چه څه رنګ د دې نه مخکښې ځله وړاندې قندهار د مغلو او ایرانیانو سره بې وفائی کړی ده دا ځل به هم د هغه واقع اعاده شوی وی ـ او زر تر زره به بیا د فوځی غلبې او قوت په زور تر لاسه راوستلې شی ـ د هغوی هم و دې خبرې ته پام او نهٔ رسیدو چه پښتانهٔ خپلې ازادۍ ته لیواله وو ـ او کوم خلق چه

يو ځل د خپلې غلامۍ زنځيرونه اوشلوى هغه بيا په خپل ژوند کښې په خپل وس خپلو پښو ته نهٔ وراچوى -

ايرانى حکومت چه د قندهار دے بغاوت ته څومره اهميت ورکړے وو هغه د دے نه څرګند دے - چه په ځائې د دے چه د پښتنو مقابلے ته ئے يو لوئې فوځ راليږلے وے ـ ايرانى بادشاه « جانى خان » نومے يو سفير رااوليږلو - دا سفير چه قندهار ته راغے نو دمير ويس په مخکښے ئے د ايرانى حکومت د زوراو قوت او شان و شوکت قصيدے شروع کړے او حکومت نه د بغاوت انجام او د هغے د تباهۍ نقشه ئے د ميرويس په مخکښے په داسے مؤثرو الفاظو کښې راښکله چه د هغهٔ په خيال کښې دليونو اوتے بوتے وے - د دے په جواب کښې مير ويس صرف دومره اوکړل چه دا سفيرئے قيد کړو -

د سفير په قيدولو کښې د مير ويس لوئې غرض دا وو چه په دے دول به د ايران برخلاف هغهٔ ته د تياريانو موقعه په لاس ورشى - ولے چه دا سفير بيرته لاړ نهٔ شو نوايرانى حکومت دوباره د هرات ګورنر د سفير په دول رااوليږلو - دا سفير چه محمد خان نوميده د مير ويس ذاتى دوست او د حج ملګرے وو - د ايرانى حکومت دا خيال وو چه ددهٔ ذاتى دوستى به د دے تعلقاتو په درستۍ کښې مفيده شى - ولے کوم ځائې چه د خپلے ازادۍ سوال پيدا شى - زړه دوستى په هغ کښې څه تبديلى نهٔ شى راوستلے - سفير ته عوت پرتکړى اوو ټيلے شول چه که د زړے دوستۍ لحاظ نهٔ وے نو د هغهٔ سره به داسے سلوک شوے وو چه بيا به دهٔ چرے د ازادو خلقو په وړاندے داسے د سپکاوى خبرے نهٔ وے کړے - او دا ئے ورته هم واضح کړه چه کومه توره يو ځل د خپلے ازادۍ د حفاظت په غرض د تيکى نه راايستلے شوى وى هغه به تر هغه وخته بيا په تيکى کښې وردننه نهٔ شى ترڅو چه د مرګ او ژوند فيصله نهٔ وى شوى - پاتے شوے تهٔ په ځان نو تهٔ به ديو دروند ميلمه په حيثيت دلے پاتے ئے -

چه دا سفارت هم بے نتيجے ثابت شو نو د شاه حسين اميران ايله د غه وخت په خبره پوهه شول - او دا ورته ثابته شوه - چه د قندهارکشاله به بے د جنګ نه نهٔ خلاصيږى - په دے غرض ايرانى حکومت د هرات ګورنر ته چه د محمد خان په ځائې مقرر شوے وو - په قندهار باندے د حملے هدايت اوکړو - او هغه په کال (۱۷۱۰ء) کښې په قندهار باندے د حملے په غرض راروان شو - مير ويس ته چه د ايرانيانو د حملے حال معلوم شو نو سمدستى ئے د پښتو زرو سورو سره د هغو مقابلے ته

ملا او تړله - جنګ اوشو - په هغې کښې ایرانیانو ماتې اوکړه - د دې نه پس د ا تلسو میاشتو په عرصه کښې غلورځله د میرویس مقابلې ته ایرانیانو فوځونه رااولیږل - ولې په هر وار به دوئ شکست اوموندلو - په دې حملو کښې پښتانۀ په ایرانیانو دومره زړور او ګبره شول چه یو ځل د پښتنو پنځو سوو سپاهیانو د ایران زرګسه سپاهیان اوو‍ژل - او نور ترنه په تیښته خلاص شول - د دې شکستونو د ایران بادشاه داسې سوځت کړو چه په قندهار ځې د یو لوئې لام ترلو اراده اوکړه -

د میرویس خان د مقابلې په غرض په ایرانی فوځونو کښې د یو زړور او تجربه کار کماندر تلاش شروع شو - اخر دا کار د ګرجستان ګورنر خسرو خان ته حواله شو - خسرو خان د ګورګین خان ورارهٔ او په زړورتیا او بد دماغئ کښې د ګورګین خان نه هم دوه ګوتې د پاسه وو - د خسرو خان په کمان کښې دیرش زره ایرانی او دولس سوه ګرجستانی سپاهیان د پښتنو مقابلې ته رَاروان شول - د دوئ د مقابلې په غرض میرویس د هلمند سیند غاړه نیولې وه - ولې میرویس ته په دې ځائې مقابله کول غوره نښکاره نهٔ شوه - او هغه د دې ځائې نه په شا شو - او دقندهار په هوااو شا کښې ځنګ وسته شو - خسرو خان د دهٔ په تعاقب کښې قندهار ته راغې - او ښارځې محاصرو کړو - ولې لږې ورځې پس د ښار خلق د محاصرې د تکلیفونو نه تنګ شول - او په مشروط طورځې خسرو خان ته د ښار حواله کولو پیشکش اوکړو - خسرو خان د جنګ خومړنې وو - ولې د سیاست او دوراندیشئ نه خالی وو - هغهٔ د ښار په غیر مشروط حواله کولو اصرار شروع کړو - پښتانهٔ د غیر مشروط حوالګئ په انجام پوهه وو - نو هغوی مقابلې ته په نره اماده شول -

یو طرف ته پښتنو د ښار دننه مدافعت او مقابله کوله - بل طرف ته میرویس خپل فوځئ طاقت زیات کړو - او د خسرو خان د رسد رسانئ لارې ځې بندې کړې - د دې نتیجه دا شوه چه خسرو خان د محاصرې په اوچتولو مجبور شو - او د واپسئ لار ځې اونیوله - دغه وخت کښې پرې میرویس د شپا رس زره پښتنو سره حمله اوکړه - په جنګ کښې خسرو خان اووژلې شو - او د هغهٔ په پنځویشت زره فوځ کښې ایله پنځهٔ سوه ژوندی په تیښته کښې کامیاب شول - دا واقعات په کال ۱۷۱۳ء کښې شوی وو -

په دې شکست د ایرانی حکومت وقارته لویه صدمه اورسیدله - هغوی یو ځل بیا په کال (۱۷۱۳) کښې د رستم خان نومې یو سالار په کمان کښې یو لوئې فوځ د قندهار

په تسخیر مقرر کړو۔ ولې رستم خان هم په تیښته ځان خلاص کړو۔ دا د ایرانی حکومت اخري کوشش وو۔ ددې نه پس دوئ د قندهار سودا پرې ښودله۔ میرویس د خپلې علاقې په انتظام کښې مصروف شو۔ د ابدالیانو نه علاوه نورو پښتنو هغه خپل بادشاه اومنلو۔ هغه د پښتنو قبائیلو په تنظیم کښې لګیا شو۔ ولې افسوس دې چه د هغهٔ عمر وفا اونهٔ کړه۔او په کال (۱۷۱۵) کښې وفات شو۔

میرویس یو قابل، مدبر او د قام خوا خوږې مشر وو۔ د سرې سینې او سوړ دماغ خاوند وو۔ یو قابل سیاست دان او د پښتنو د آزادئ بانی وو۔ په پښتنو کښې چه د دهٔ په کوششونو د ازادئ کومه جذبه پیدا شوې وه۔ هغه د دهٔ په مرګ هم سړه نه شوه۔ د میرویس مقبره د قندهار سره نزدو په "کوکران" نومې مقام کښې ده۔ د دهٔ د قبر په خازه دا مصرعه لیکلې شوې ده۔ ے

د ننګ تهوته به ے هر هله وی　　که پس له مرګه ے په ګور راسې مینه[1]

د میرویس خان په وفات د هغهٔ د جانشینئ مسئله پیش شوه۔ د هغهٔ د مرګ په وخت کښې د هغهٔ دوه ځامن میرمحمود (د اتلسو کالو او بل شاه حسین د اولسو کالو) موجود وو۔ ولې د پښتنو مشرانو په خیال کښې دا دواړه ځلمی د بادشاهئ د ذمه وارئیو د پاره لا کچه وو۔ نو په دې وجه د میرویس یو ورور عبدالعزیز خان د هغه په ځائ د قندهار باچا شو۔ او د پښتنو مشرا و تاکلې شو۔ ولې د میرویس او عبدالعزیز خان په خویونو کښې د زمکې اسمان فرق وو۔ هغه ایران چه میرویس په هرمیدان کښې ورله ټکرې ورکړې وې۔ اوس عبدالعزیز ته د شین زمری نه کم نهٔ ښکاریدو۔ د تخت نشینئ سره سم هغهٔ د ایران سره د صلح اراده ښکاره کړه۔ په هر قام کښې ځینې داسې کسان هم موجود وی۔ چه هغوی د خپلې ځان آسانئ په خاطر د خپلو لویو لویو قامی مفادو په تباه کولو هم اړ نهٔ وی۔ او د خپلې بزدلئ او کمزورئ له کبله د معمولی ذمه وارئ او چتولو اهمیت هم نهٔ لری۔ په غلجیانو کښې په مشرانو کښې هم یوه داسې ډله موجوده وه چه هغوی د عبدالعزیز دې اراده ته په ډکه خُله هرکلې اووئیل۔ او عبدالعزیز د ایرانی حکومت سره د صلح په عرض جرګې مرکې شروع کړې۔ د هغهٔ مطالبې ډیرې معمولی وې۔ هغهٔ دا غوښتل چه د قندهار نه ډ مالیه نهٔ شی اخستلې۔ په دې صوبه

---

[1] پټه خزانه

کښې دِ د بل قام فوځ نه وی۔ او د قندهار د صوبې حکومت دِ د عبدالعزیز په کورنئ کښې موروثي شی۔

ولے پښتانهٔ په دے خبره ډیر ناراض وو۔ او د دے ناراضو خلقو مشر د میرویس ځوئے میر محمود وو۔ میر محمود د پلار په ژوند کښې هم د ازادئ په جنګونو کښې لویه حصه اخستې وه۔ هغهٔ د پښتنو مشرانو یوه جرګه راغونډه کړه۔ او د هغوی په مشورې ئے د خپل تره د وژلو فیصله اوکړه۔ چنانچه عبدالعزیز خان د میر محمود د لاسه او وژلے شو[1]۔ او د هغهٔ په ځائے میر محمود د قندهار بادشاه شو (سنه ۱۷۱۶ء)۔ د تخت نشینئ نه پس هغه کسان هم کوم چه د عبدالعزیز ملګری وو۔ د میر محمود په حکم اووژلے شول۔ او په دے دول ئے د خپلے ازادئ ټول دشمنان د خپلے لارے نه لرے کړل۔ په ابتدا کښې په محمود کښې د پلار ټولے خوبئ موجودے وے۔ د پښتنو ټول قبائیل د هغهٔ نه رضا وو۔ د هغهٔ لویه ارزو دا وه چه د ایران د صفوی ټبر نه ے د قندهار د پښتنو د ظلمونو بدل واخستلے۔

د میر محمود د تخت نشینئ نه لږه موده پس د هرات ایرانی ګورنر یو دا سے ذلیل کار اوکړو چه د هغ په نتیجه کښې ئے خپله هم سر اوخوړ او د هرات صوبه هم د ایرانی حکومت نه ازاده شوه۔ د دے ګورنر نامه محمد زمان وه۔ دا سړے د ډیرو کچه اخلاقو خاوند وو۔ په دے ورځو کښې د ابدالی قبائیلو مشر حیات سلطان نومیدهٔ چه د سدوزو د قبیلے مشر وو۔ اسدالله خان د دهٔ ځوئے وو۔ چه یو ډیر ښکلے ځلمے وو۔ د پلار په صلاح دے ایرانی ګورنر د اسدالله ابرو ریزی اوکړه۔ د ابدالیانو قبیله د قندهار د قطب نه تر هراته پرته وه۔ په کومو شرائطو چه غلجیانو د شاه عباس اطاعت منلے وو۔ هم په هغهٔ شرطونو ابدالیانو هم فیصله کړی وه۔ ولے چه د اسدالله خان سره د ایرانی ګورنر د لاسه ناوړه سلوک او شو۔ نو هغهٔ د خپلے قبیلے ټول مشران راغونډ کړل۔ او هغوی ته ئے د خپلے بے عزتئ او د پلار د بے غیرتئ واقعه بیان کړه۔ او د هغوی په مشوره ئے اول د خپل پلار غم غوځ کړو او بیائے د قام د ځلمو په مرسته په زمان خان باندے چغه اوویستله۔

---

[1] د پیټے خزانے مطابق عبدالعزیز په قندهار کښې د قصر نارنج د چت نه د شپے په تیارهٔ کښې راپرے وتے او د هغ په وجه په کال سنه ۱۱۲۹ کښې مړ شوے وو۔

او هغه ئے هم اووژلو۔ د دے نه پس ابدالیانو هم دغه اسد الله خان خپل مشر او ټاکلو۔ او دوئ په هرات حمله اوکړه۔ ایرانی فوځ په جنګ کښے تیښته اوکړه۔ ابدالیانو هم د خپلے ازادئ اعلان اوکړو۔ او په هرات د دوئ قبضه شوه۔ د قندهار د ازادئ نه پس دا دویمه صوبه وه چه د پښتنو په لاس دایرانی حکومت نه ازاده شوه۔

په دغه ورځو کښے ایرانی حکومت ته یواځے دا غم نۀ وو ورپیښ شوے بلکه د دوئ په سلطنت کښے کردو او اوزبکو هم تاتارجوړ کړے وو۔ دغه وخت په ټول مملکت کښے داسے اړے ګړے پیدا شوے وو۔ چه د بادشاه او د هغۀ د بزدله امیرانو نه ئے بند پیوند خطا کړے وو۔ او داسے جرنیل په لاس نۀ ورتلو۔ چه په دے نازک وخت کښے پر د دوئ زړ و نه راغونډ شوے وے۔ اخر ډیر تلاش او غور و فکر نه پس دوئ ته یو سړے په لاس ورغلو دده نامه صافی قلی خان وه۔ چه څه موده اګاهو ئے د قاضی القضاۃ د عهدے نه استعفیٰ ورکړی وه۔ او د دے وجه دا وه چه دا سړے حد په صورته دیانت دار او انصاف پسند وو۔ او د فیصلے په وخت کښے به ئے د چا بے څا یه څخ ملاحظه نۀ کوله۔ په دے وجه بددیانته او رشوت خوارۀ امیران دده نه مخالف وو۔ ولے د تنګسیا په دے وخت کښے دایران د قامی ننګ و ناموس د حفاظت په نوم چه د هغۀ نه د فوځ د کمان سمبالولو خواست اوکړے شو نو دا خواست هغۀ قبول کړو۔

دا څل په ایرانیانو کښے یو نوے جوش و خروش پیدا شوے وو۔ د حملے د پاره دیو نوی او په سازو سامان اراسته د پنځه ډیرش زره په شمار کښے تیار شو۔ د دے د کامیابئ د پاره په جماتونو کښے دعاګانے او غونډلے شوے۔ اخر دا فوځ د صافی قلی خان په کمان کښے د ډیرو امیدونو او تلوسو سره راروان شو۔ د دے فوځ په ذمه اول د اوزبکو غوږونه تاوول وو۔ او بیا د هرات د پښتنو مرکښ ماتول۔

دایران د سرحد سره نزدو دایرانی فوځ او اوزبکو مقابله راغله۔ ولے اوزبک په مقابله کښے ټینګ نۀ شو۔ مخه ئے اوکړه۔ په دے کامیابئ ایرانی فوځ سنۀ داده شو۔ او د ځوانی قاضی صاحب د جنګی قابلیت رعب د قومیانو په زړونو کښے کښیناست د دے نه پس دوئ د ابدالیانو مقابلے ته راروان شول۔ د هرات په علاقه کښے د کاویزکلی سره پښتانۀ او ایرانیان همرو شول۔ پښتانۀ د اسد الله خان په ماتحتئ کښے پنځلس زره په شمیر کښے وو۔ دا مقابله د برابر برابر مقابله نۀ وه۔ څکه چه ایرانیان

د پښتنو په نسبت دوچنداو ورسره توپے هم وے. ولے دابدالی فوځ داکیے د دوئ په زړونوکښے دڅپلے ازادئ هغه جذبے پوره کړے وو. کومه چه دوئ تازه تازه حاصله کړی وه. غرض جنګ شروع شو. دمازیګر پورے درے زره پښتانهٔ څه مړهٔ او څه ژوبل شول. او د دوئ د کامیابئ هیڅ توقع نهٔ وه. ولے په دے وخت کښے بے طمع یو داسے واقعه اوشوه چه دجنګ ټوله نقشه ئے بدله کړه. او فائده ئے پښتنو ته اووتله.

د پښتنو د فوځ یو ټولی د ایرانی فوځ دمقابلے په غرض یوغونډئ نیولی وه. دایرانی فوځ دګوله بارئ په نتیجه کښے دے سپاهیانو دماښام په څره کښے داغونډئ پریښنوه. اوسمدستی په دے غونډئ دایرانی فوځ یوے دستے قبضه اوکړه. خو دګوله بارئ په ګردوبار او دماښامی په تیارهٔ کښے دایرانی فوځ توپچیان په دے اګاه شوی نهٔ وو. نو هغوی په څپلو فوځیانو ګوله باری شروع کړه. ځکه چه د هغوی په خیال کښے دا د پښتنو فوځی دسته وه. د دے ګوله بارئ په جواب کښے دے سپاهیانو هم په څپلو سپاهیانو مټ ورکښیښندلو. اسدالله خان دایرانی فوځ په دے غلطئ سمدستی پوه شو. او هغه دڅپلے رسالے سره په ایرانی فوځ یو زوروره حمله اوکړه. ایرانی فوځ دے حملے ته ټینګ نهٔ شو. صافی قلی خان د اتهٔ زره سپاهیانو سره په جنګ کښے مړشو. باقی فوځ پښے سپکے کړے. دایو داسے فتحه وه چه پښتنو ته بے طمع په نصیب شوه. د دے نه پس اسد الله خان بے دمشهد نه ټول ایرانی خراسان فتح کړو. او بیائے ،، فراه ،، محاصره کړه. لیکن دغه وخت میر محمود د قندهار نه په دهٔ حمله اوکړه. په جنګ کښے اسدالله خان اووژلے شو. اوپښتانهٔ دڅپلے بے اتفاقئ په وجه د یو قابل او ننګیالی مشر نه محرومه شول.

میر محمود ،، فراه ،، دڅپل ځان د پاره فتحه کړه. او بیائے دسیستان اوکرمان علاقے هم اونیولے. ولے دسیستان په ریګستانونو کښے د هغهٔ فوځ ډیراوتږے شولو دغه وخت کښے د میر محمود مقابلے ته د ایران د سمت جنوبی حاکم لطف علی خان راروان شو. دا سړے د وزیر اعظم فتح علی خان ورور وو. او دجنګ په کاروبارکښے ډیرپوهه وو. لطف علی خان د میر محمود په مقابله کښے بریالے شو. او هغه قندهار ته په تیښته راغے. په واپسئ کښے د سیستان ریګستانونو د محمود فوځ ته نور هم ډیرزیان اورسولو.

میر محمود چه ، قندهار ته راغی نو د خپل فوځ په تنظیم کښې لګیا شو. د پیر غلجي، ابدالي پښتانهٔ او بلوچ ئې په خپلو فوځونو کښې بهرتي کړل. په قندهار کښې ئې د غلې ذخیرې جمع کړې. د باشیلات په صورت او د قندهار د محاصرې په حالت کښې ئې د ښار د ننه د حفاظت او مدافعت ټول ممکن انتظامات مکمل کړل. او یو ښهٔ منظم او په وسله اراسته فوځ ئې مرتب کړو. یو طرف ته میر محمود په ایران باندې د حملې په تیاریانو کښې لګیا وو. بل طرف ته د ایران درباری امیران په خپل مینځ کښې په ذلیلو سازشونو کښې بوخت وو. لطف علی خان چه میر محمود ته شکست ورکړو نو د هغهٔ دا خیال وو چه محمود به بیا هم حمله کوی. د دې حملې د مدافعت په غرض هغهٔ په داسې زور و شور تیاریانې شروع کړې. او په دې تیاریانو کښې ئې په خپلو دومره ظلمونه اوکړل چه دخلقو نه ئې د میر محمود د حملې سختیٔ هیرې کړې. په دې وجه د لطف علی خان مخالفینو هم موقع اوموندله او هغوی د دهٔ برخلاف په سازشونو کښې لګیا شو. د هغوی دا خیال وو. چه که ټول اختیارات د دې دواړو ورونو (فتح علی او لطف علی) په لاس کښې راشي نو د نورو به بیاخیر نهٔ وی. په دې سازش کښې د بادشاه لوئ امام او شاهی طبیب هم شامل وو. بادشاه په خپله یو بې مغزه او نا قابله بنیادم وو. او د دې خود غرضه امیرانو په لاس کښې د دې دواړو ورونو د طاقت داسې ویره کښېنوله چه بادشاه شپه په شپه وزیراعظم فتح علی ګرفتار کړو او د هغهٔ نه ئې سترګې اوویستلې. او بیائې قید کړو. دا مظلوم دوه کاله پس په قیدخانه کښې مړ شو. ولې د لطف علی خان په ځرګنده ګرفتارول ګران وو. نو د هغهٔ سره ئې هم چل اوکړو. د قلعه شیراز ګورنر هم په دې سازش کښې شامل وو. هغهٔ لطف علی خان د دعوت په بهانه خپلې قلا ته راوغوښتلو. او چونکه لطف علی خان د دې سازش نه هډو خبر نهٔ وو نو هغه د یو څو سپاهیانو سره د ګورنر دعوت ته راغی. دغه وخت د ګورنر په حکم هغه ګرفتار کړے شو. دلطف علی خان په ګرفتاریٔ د هغهٔ ټول فوځ تار په تار او دانه وانه شو. دغه شان د ایران خود غرضه امیرانو د خپلو ذلیلو مفادو په خاطر د خپل سلطنت بنیادو نه اوړچول. او میر محمود ته ئې په ایران باندې حمله اسانه کړه. دا واقعات د کال (۱۷۲۰) دی.

میر محمود د بادشاه د بې عقلیٔ او د هغهٔ د خود غرضه امیرانو د سازشونو نه ښه خبر وو. هغهٔ په ډیره تندیٔ د خپلو فوځونو په تنظیم کښې لګیا وو. او اخر د ضروری

انتظاماتو نه پس په کال ۱۷۲۲ء کښې د اتویشت زره فوځ سره د ایران د فتح په نکل د قندهار نه روان شو- او هم د سیستان هغه وړومبۍ لاره ئې اختیار کړه- کرمان ته اورسید- د کرمان قلعه لطف علی خان ډیره مضبوطه کړی وه- محمود دا قلا محاصره کړه- ولې د قلا فتح کول ورته گران معلوم شو- آخر د دۀ پرده داسې راغله چه د قلعې گورنر ورله شپږ زره پونډه پیشکش ورکړۀ- محمود دا رقم واخست- قلاځ په ځائې پرېښوده- او وړاندې روان شو- په "یزد" ئې حمله اوکړه- د "یزد" قلا بندی ماتول هم د محمود د وس نه بهر خبره وه- نو هغۀ دا قلا هم په خپل حال پرې ښوده او د اصفهان په نیت روان شو-

محمود د اصفهان نه سل میله لا لرې وو چه هغۀ ته د ایرانی وزیراعظم محمد قلی خان د لورې نه دا پیشکش اوشو چه که هغۀ د ملې کولو نه بغیر بیرته لاړ شی نو هغۀ ته به اووۀ نیم دیرش زره پونډونه د تحفې په ډول ورکړې شی- ولې محمود ته دا ایران سلطنت د دې معمولی تحفې په مقابله کښې زیات قیمتی ښکاره شو- او هغۀ د دې جواب داسې ورکړو- چه ئې د اصفهان لارې اونیوله- او د ایرانی صدر مقام (اصفهان) نه د نهو میلو په فاصله په "گلن اباد" نومې مقام باندې ئې خپل کیمپ اولگولو- او د خپل کیمپ نه ئې چار چاپیره خندقونه اوکنستل- د دغه وخت د هغۀ فوځ درویشت زره وو- د ایران غوندې یو وسیع، طاقتور او قدیم سلطنت په مقابله کښې د پښتنو دې وړوکی اوبې سروسامانه فوځ په اوړو کښې د مالگې حیثیت هم نۀ لرلو- ولې په دغه وخت کښې د ایران د امیرانو او ذمه وارو افسرانو قامی کردار ډیر کمزورې وو- دغه وجه وه چه د محمود د دې بې ساز و سامان فوځ په راتلو د شاه حسین امیران ډیر وار خطا شول-

په دغه زمانه کښې اصفهان په جنگی نقطه نگاه سره ډیر محفوظ او ناقابلِ تسخیر گڼلې شو- دغه وخت صرف په ښار کښې د ننه شپیته زره په وسله پور فوځ موجود وو- لیکن دا ټول فوځ د زړور تیا او قامی ننگ و ناموس د جذبې نه خالی وو- دغه وجه وه چه سپاهیان وو او که عام اولس د محمود هر سپاهی ورته د اجل فرښته ښکاریده- ځکه چه دغه وخت په دوئ کښې څوک د لطف علی خان غوندې قابل فوځی سردار نۀ وو-

د حمله آور فوځ د مدافعت او مقابلې په غرض د بادشاه په صدارت کښې د امیرانو وزیرانو جرگه کښېناستله- په جرگه کښې هرچا خپله خپله اووئیله- د وزیراعظم محمد قلی خان دا صلاح وه چه فوځ دِ د حفاظت په غرض په خندقونو کښې کښېنولې شی.

ځکه چه پښتانه به پرے حمله نهٔ شي کولے. او د دے به دا فائده وی چه یو طرف ته به د ایرانی سپاهیانو زړونه ډاډه شي. او بل لور ته به د پښتنو فوځ اوزړلے شي. د والئ عربستان عبدالله خان دا رائے وه چه یو طوفاني او ناګهاني حمله به غوره وی. په جرګه کښے د مذهبي ټولی نمائندګی شاهي امام کوله. دغهٔ دا رائے ورکړه چه په استراباد کښے یوه بزرګه ښځه ده. او هغې دا وئیلی دی چه که د یوچیلی دوه پتونونه او دوه نیم سوه هلکان په اوبو کښے سره د څرمنے او یشـو لے شي او یو ځوانه پیغله جینۍ دولسوه ځله "لا اله الا الله" اولولی او په هغې ښوروا دم واچوی او هغه ښوروا چه هر څوک اوڅښی نو دغه به بیا چاته نهٔ ښکاری. دا خبره د ټولو خوښه شوه او فیصله اوشوه چه داسے ښوروا دِ تیاره کړے شي. او بیا دِ په سپاهیانو اوڅښولے شي. او د هغې نه پس دِ جنګ ته روان شي.

دغه ښوروا پنځوس زره سپاهیانو اوڅښله. او بیا په ۷ مارچ ۱۷۲۲ء د میرمحمود مقابلے ته روان شول. د دوئ سره ځلورویشت لوئے توپے هم وے. د دوئ په مقابله کښے پښتانه شل زره وو. او لویه توپه ورسره یو هم نهٔ وه. په اتم تاریخ دواړه فوځونه مخامخ شول. په دواړو فوځونو کښے ډیر فرق وو. ایرانیان سرهٔ سپین، غټاکټ او ښهٔ خیرازه وو. په مقابله کښے پښتانهٔ نری نروځکی د نمرونو تاوونو وهلی او زیړی او په جامه رسیسن وو. ولے په زړونو کښے جوش او ولوله وه. لیکن د ایرانی فوځ دسردارانو په زړونو کښے د بغض وحسد اوربلیدهٔ.

د نمرختو سره سم جنګ شروع شو. په اوله حمله کښے ایرانی فوځ د پښتنو فوځ ډیر اوکښیښندلو. د عربو والی عبدالله خان د پښتنو دګس اړخ فوځ په ماتې مجبور کړو. ولے د پښتنو په کیمپ کښے په لوټ مشغول شو. دغه وخت د جنګی مصلحت په بِناپښتانهٔ وروستو شول. او چه ایرانی فوځ د دوئ د وړو توپو په زد کښے راغے. نو یو بارے پرے اوچلولو. په دے ګوله باریٔ ایرانی فوځ اوتمبیدلو. او داسے اوترشو چه وروستو شو. پښتانه هم ورپسے شول. او د ایرانی فوځ په توپوے قبضه اوکړه. او هم په هغه توپوۓ په ایرانی فوځ ګوله باری شروع کړه. په دے حمله کښے د ایرانی فوځ مینځ (رقاب) بلکل تباه شو. باقی فوځ تیښته اوکړه. دا ډیری لری جنګ وو. دے جنګ اصفهان د پښتنو په تلی کښے کیښود. د پښتنو په لاس ډیر سازوسامان هم راغے. دا ښپیرهٔ خبر چه اصفهان ته اورسید نو بادشاه دومره ویرے واخست چه د تیښتے په

تکل شو۔ ولې د "اهواز" والي ورته تسلي ورکړه۔ او د هغهٔ په ډاډګیرنه یې د مدافعت اراده اوکړه۔ دغه وخت په هغې کمانډ کښې بیا تبدیلۍ اوکړې شوې۔ عبدالله خان والئ عربستان د ښار حاکم اعلیٰ او علي مردان خان نومې یو امیر د فوځ سالار اعلیٰ او ټاکلې شو۔

دا فتح داسې بې طمع او د ناامیدۍ په حالت کښې حاصله شوې وه۔ چه د محمود په خیال کښې هډو د دې امکان نهٔ وو۔ دغه وجه وه چه هغه د دې فتح نه سمدستي فائده وا نهٔ خستله۔ هغه هډو په ځان نهٔ پوهیدهٔ او ګیچکول وو۔ د کرمان او یزد د محاصرو سختیو هغه داسې ویرولې وو چه هغهٔ څه فیصله کن اقدام په دې موقع او نهٔ کړې شو۔ د محمود د دې پریشانۍ نه ایرانیانو ته فائده اورسیده۔ او هغوی د خپل مدافعت تابیا اوکړه۔ محمود تر هغه وخته دغه اقدام کولو اراده نهٔ لرله۔ ترڅو چه د هغهٔ جاسوسانو هغهٔ ته د ښار د خلقو او بادشاه د پریشانۍ اطلاع نهٔ وه ورکړې۔ او هرکله چه هغهٔ د خپلو جاسوسانو د خُلې نه د اصلي حالاتو نه خبر شو نو دغه وخت د هغهٔ سترګې او غړیدلې۔ او هغه وړاندې روان شو۔ اول یې په فرح آباد قبضه اوکړه۔ چه د اصفهان نه د دوو میلو په فاصله یو ځای وو۔ دلته یو شاهي محل هم وو۔ د دې نه پس یې په بلقا قبضه اوکړه۔ چه د اصفهان نه یو نیم میل په سویل د "زنده رود" په سویلي غاړه یو مقام وو۔ دلته ارمني سپاهیان وو۔ چه د پښتنو یې تر اخره وخته بلا مقابله اوکړه۔ ولې آخر یې وسله کیښوده۔ په دې ځای کښې د پښتنو د لاسه داسې ظلمونه اوشول چه د هغې په وجه د دوی د فتحه او د دوی کردار ډیر داغدار شو۔

د دې نه پس محمود په اصفهان چپاؤ اوکړو۔ ولې په اوله حمله کښې ناکامیابه شو۔ دهٔ دویمه حمله هم د حرم سرا د یو محافظ احمد علي د لاسه ناکامیابه شوه۔ دا ځل ایراني فوځ د پښتنو تر مورچو را اورسید۔ د دې ناکامیابۍ محمود ته د کرمان او یزد د محاصرو کړاونه ورپه یاد کړل۔ او هغه د اصفهان د فتح نه ناامید شو۔ چنانچه هغهٔ د مصالحت په غرض بادشاه ته یوه جرګه اولیږله۔ او د صلحې د پاره یې دا شرطونه پیش کړل۔ چه که بادشاه ما د قندهار، کرمان او خراسان خود مختاره بادشاه اومني او خپله یوه لور ماته په نکاح راکړي۔ او هغې ته په داج کښې یو لک پنځویشت زره پونډونه ورکړي۔ نو زهٔ به بیرته لاړشم۔ ولې د ایراني فوځ د دې تازه کامیابۍ بادشاه او د هغهٔ امیران ډاډه کړي وو۔ دغه وجه وه چه بادشاه د خپلو امیرانو په صلاح دا شرطونه او نهٔ منل۔ او دا ډیره د

بد قسمتۍ خبره وو - او هغه تباهي به نه وه شوې کومه چه د مستقبل په پړدو کښې لا پټه وه -

د محمود سره ایله شل زره سپاهیان وو - دے ناکامیا بیو هغه اوویرولو - اوس هغه داصفهان د محاصرے اراده اوکړه - په ګیر چاپیره علاقو کښې ئے تاخت و تاز اغاز کړو - په دغه ورځو کښې یو داسې واقعه اوشوه چه د هغې په وجه د پښتنو او ایرانیانو تعلقات ډیر خراب شول - د ګلنا آباد د جنګ نه پس ډیر ایرانی سپاهیان بن اصفهان نومے یو قلا بند مقام ته تلی وو - او د هغه ځائے نه به ئے په ناخبرۍ کښې په پښتنو حملے کولے - په یو موقعه امان الله خان نومے یو پښتون سردار د خوراک و سامان د یو قافلے سره د دے کلی په خوا کښې راتیریدلو - چه ایرانی سپاهیانو پرِ حمله اوکړه - قافله ئے ټوله لوټ کړه - او ډیر پښتانۀ ئے بندیوان کړل - په دوی کښې د محمود یو ترۀ ، دوه تربوران او یو میرنے ورور هم شامل وو - محمود بادشاه ته د دے قیدیانو د واپس کولو د پاره خبراولیږلو - ولے د بادشاه د مداخلت نه اول اول دا قیدیان ایرانی سپاهیانو وژلی وو - په دے خبره محمود دومره غصه شو چه د هغۀ سره چه څومره جنګی قیدیان وو - هغه ئے اووژل - او د دے نه پس ئے د اصفهان محاصره نوره سخته کړه - او په خپله په فرح آباد کښې دیره شو -

یو طرف ته محمود د ښار محاصره سخته کړه - بل طرف ته د بادشاه مشرځوئے طهماسپ چه په ملک کښې د فوځونو جمع کولو په غرض ګرځیدلو - د خپلے نا مرادۍ اطلاع بادشاه ته ورکړه - په داسې نازک وخت کښې چه د ایران د زړګونو کالو عظمت ته لویه خطره پیښه وه - او د دے قدیم او عظیم سلطنت سپکاوے کیدو - دغه خود غرضه امیران چه د هغوی د خود غرضۍ او بدکردارۍ په نتیجه کښې د سلطنت اخری سلګۍ وے - لا هغه شان د بادشاه مجلسیان او اعتباریان وو - او مخلص ازموده ، تجربه کار خلق د ټولو نه وروستو او د دے بدکرداره امیرانو د سترګو ازغۍ وو - دغه وخت چه بادشاه د نور امداد نه مایوسه شو . نو هغۀ د میر محمود هغه وړاندینی شرطونو منلو ته غاړه کیښوده - ولے د بد قسمتۍ نه دغه وخت میر محمود د صلح نه انکار اوکړو - په دے موقع د سیستان ګورنر ملک محمود د لس زره فوځ سره ګلن اباد ته رااورسید - د دے امداد په رسیدو داصفهان د اولس ایرانی امیرانو او د بادشاه لاړے لمدے شوے - ولے د هغوی داخوشحالی ډیر زر بیا په غم بدله شوه - « میر محمود » د سیستانی ګورنر سره د خراسان د بادشاهۍ وعده

اوکړه - او هغه بیا په خپله مخه لاړ -

د دے نه پس محمود ته لار اوزګاره شوه - او هغهٔ د اصفهان محاصره دوه میاشتے نوره هم اوږده کړه - د دے په نتیجه کښے په ښار کښے د قحط سختیٔ دومره زیاتے شوے چه د خلقود زغم نه بهر شوے - او د ښار د حواله کولو نه بغیر بل څه لار پاتے نهٔ شوه - چنانچه بادشاه جاے واغونښتلے - د میر محمود په حق کښے د ایران د سلطنت تسلیم نامه اولیکلے شوه - او په هغ باندے بادشاه او د هغهٔ امیرانو وزیرانو دستخطونه اوکړل - او مُهرونه ئے پرے اولګول - بله ورځ بادشاه او د هغهٔ امیران په هغه اسونو کوم چه میر محمود د دویٔ د پاره ورلیږلی وو سوارهٔ شول - او د محمود په خدمت کښے حاضر شول - دا داسے ورځ وه چه د ایران کانړو بوټو هم په سرو سترګو ژړل - دایران بادشاه چه د محمود دربار ته اورسید نو د هغهٔ نور سپکاوے هم اوشو - هغهٔ ته اوویلے شول چه محمود لا اوده دے - په دے بهانه هغه نیمه ګینټه ایسار کړے شو - او د دے نه پس د محمود په خدمت کښے حاضر کړے شو - دغه وخت محمود د یو قالین د پاسه یو ے ریښمنے تکیه ته ډډه وهلی وه - چه بادشاه د کمرے مینځ ته اورسید نو محمود ورپاسیدهٔ او هغه ئے په خپلے خوا کښے کښینولو - شاه حسین په خپل لاس ایرانی تاج د محمود په سر کیښود او مبارکی ئے ورکړه - د دے نه پس قهوه راغله او چه محمود خپله پیالیٔ اوچته کړه - نو دا ئے اوویل دا د بنیادم د لوئے والی حقیقت دے - د خدائے پاک چه چا ته خوښه وی هغهٔ ته بادشاهی ورکوی - او د یو قام نه ئے اخلی او بل ته ئے سپاری - ولے زهٔ دا وعده کوم چه ستا سره به د خپل پلار په شان سلوک کوم - او د ستا په مشوره به عمل کوم - د دے نه پس په ایران باندے د صفوی اختیار ختم شو - او د قند هار د غلجو بادشاه د ایران بادشاه شو -

د دے نه پس میر محمود اصفهان ته لاړ - د بادشاه د استوګنے د پاره ئے یو لوئے محل او معقول پنشن مقرر کړو - په دے جنګونو کښے چه ملک ته کوم نقصان رسیدلے وو - د هغ په تلافیٔ او د خلقو په تالیف قلوب کښے په ډیر اخلاص او سرګرمیٔ ګکیا شو - ولے د بد قسمتیٔ نه د میر محمود دا نیک خیالات او نیکے ارادے ډیره موده قائمے پاتے نهٔ شوے - د دے یو وجه خو دا وه چه ایرانیانو به د پښتنو نه ډیر نفرت کولو - د دے جذبے زیر اثر ایرانیانو د پښتنو برخلاف په سازشونو لاس پورے کړو - د دے بله وجه دا وه چه پښتانهٔ هم د خپل جبلی عادتونو نه مجبور وو - د ایران جنګ ختم شوے او دویٔ اوزګار شوی

وو- او لکه چه په هره موقع د پیش نظر مقصد د حصول نه پس بیا په دوئ کښې قبیلوی او خاندانی تعصبات ترېگنې، پرے جنبے او بغضونه رالږزیږی. په دے موقع هم په دوئ کښے پرے جنبے، بغضونه حسدونه او ګیلے شکایتونه راولټیدل -د دے نتیجه دا شوه چه د میر محمود په زړه کښے ویرے او وسوسے پیدا شوے- دهغهٔ په دماغ دهمونو غلبه اوکړه- د هغهٔ په طبیعت کښے سختی پیدا شوه- په دے ورځو کښے چه هر څومره د ایرانیانو سازشونه زیاتیدل هغومره د میرمحمود په ظلمونو کښے هم زیاتے پیدا کیدو- هغه یواځې په ایرانیانو بدګمانه نهٔ وو- بلکه د پښتنو نه هم د هغهٔ ویسا پاسیدلی وه - د دے بداعتمادئ په وجه په پښتنو کښے هم پرے جنبے پیدا شوے- او د دوئ اتحاد و اتفاق ختم شو- د وهمونو او وسواسونو له کبله میر محمود لیونے شان ته شو- د هغهٔ دا خیال پیدا شو چه زما سلطنت د ایرانیانو د لاسه په خطره کښے دے- د دے وهم د غلبے د وجهے نه هغهٔ نه ایرانیان معاف کړل- او نهٔ پښتانهٔ- د هغهٔ ظلمونه د خپلو او پردو د زغم نه بهر شول- اخر د پښتنو د مشرانو په صلاح د میراشرف دلاسه چه د هغهٔ د تره (عبدالعزیز) ځوے وو- اووژلے شو - (۱۷۲۵ء) - او د هغهٔ په ځائے میراشرف تخت نشین شو-

د میراشرف دا فعل اګرچه د حالاتو مطابق موزون او جائز وو- ځکه چه محمود چه کوم حالت ته رسیدلے وو- د هغے علاج هم د هغهٔ مرګ وو- ولے څه وخت چه د میرمحمود د مرګ خبر قندهار ته راغے نو د هغهٔ کورنئ په دے ډیر خفګان ظاهر کړو- او د میراشرف د لاسه ئے د محمود دا قتل د هغهٔ د پلار عبدالعزیز د قتل بدل اوګڼلو- دغه وجه وه چه د ایران په شخړه کښے وروستو بیا میراشرف ته د قندهار نه څه مرسته په لاس نهٔ ور تله- او د هغهٔ د ناکامیاب کیدو غټه وجه هم دا وه- میر محمود اګرچه لیونے شوے وو- ولے د هغهٔ په مرګ چه د هغهٔ خور (زینت بي بي) کومه مرثیه وئیلی ده- د هغې نه د محمود شخصیت او د هغهٔ سره چه پښتنو کوم توقعات وابسته کړی وو- هغه په واضحه ډول څرګندیږی- د یو پیاوړی ورور په مرګ چه هغے ئے هم د یو تربور د لاسه موندلے وی- د یوے خوېندے خور زړهٔ ته چه کوم درد او صدمه رسی هغه د دے مرثیے د هر شعر نه څرګنده ده-

## د میرمحمود په مرګ د هغهٔ د خور (بي بي زینب) مرثیه

ژغ سوچه ورور تیرله دنیا سونا ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ قندهار واړه په ژړا سونا
زړهٔ ے ویر کښے مبتلا سونا ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ چه شاه محمود له ما جدا سونا

دا روڼ جهان راته تورتم دے نا
هوتک ، غم ژن په دے ماتم دے نا
چه شاه محمود تیر له دنیا سونا
ځوان و ، میړهٔ د توره جنګ ونا
افسوس چه مرګ د ده په خواسونا

زړهٔ د بیلتون په تیغ کړم دے نا
د پاچهئ تاج مو برهم دے نا
قندهار واره په ژړا سونا
ولاړ د قام په نام و ننګ نا
قندهار واره په ژړا سونا

محمود لا نهٔ یواځے خور ژاړی
خپلوان لا څه باچا دِ ورور ژاړی
پښتون دِ تهول په واویلا سونا
اصفهان پاتے تاج نسکور عالمه
د پښتون لرسو تیارهٔ تور عالمه
چه باچا ولاړ پښتون ګدا سونا

پر مرګ دِ تهوله کلے کور ژاړی
لښکر سپاه دِ پلے ، سپور ژاړی
قندهار واره په ژړا سونا
چه شاه محمود سوئ په ګور عالمه
راته دښمن به کا پیغور عالمه
قندهار واره په ژړا سونا

لښکر شو خپور ، پښتون ولاړے اران
پاتے سو تاج و تخت د تهول اصفهان
وائ پښتون اوس بے باچا سونا

په خاوړو څاځ کا شاه محمود عالیشان
زړهٔ ئے دا سوړ سو کا خوښی دښمنان
قندهار واره په ژړا سونا

اسمانه بیا دِ څه ستم کا څرګند
دښمن دِ بیا زمونږ په ویر کا خورسند
په کور مو ډیر شور و غوغا سونا

وشلوه تا چه د پښتون وو پیوند
چه شاه محمود دِ کا په قبر کښے بند
قندهار واره په ژړا سونا

هوتکو ژاړئ محمود شاه څهٔ سونا
له اصفهانه تر فراه څه سونا
د پښتنو پر تم فناه سونا

پښتنو ستاسے لوئے سپاه څه شونا
باچا چه وو هشت پناه څه شونا
قندهار واره په ژړا سونا

محموده ځوان وے ولے ولاړے له ما
اصفهان ولے پاتے سونا له تا

له تخت و تاجه تهٔ په څه سوے جلا
سر دِ راپورته کړه چه څه کړی اعدا

دښمن ولاړ بيا ستا اوښوا سونا — قندهار واړه په ژړا سونا

اورم نارے دغم چه کړينه فرياد — پښتون په مرګ دشاه محمود سو برباد
زړونه چه تل به وو ښادمن سوناښاد — د ساندو ژغ دے چه راوړينه ځے باد
ماتم زده پير و سبرنا سونا — قندهار واړه په ژړا سونا

ورو ره مقر دِ ستا مولا کړی جنت — در دِ کی ستا ته پس له مرګه راحت
روح دِ وهٔ ښاد په لويه ورځ دقيامت — مخ دِ دهٔ رون دخدائے په مهرورحمت
دخالق رحم تل پر ستا سونا — قندهار واړه په ژړا سونا[1]

د مير محمود د وژلو نه پس ميراشرف د اصفهان تخت سمبال کړو. په دهٔ کښے د دے تخت د سمبالولو صلاحيت او اهليت موجود وو. ميراشرف يو ډير زړور او مخلص ځلمے وو. ولے د مير محمود درے کليزه دورحکومت د ايرانيانو په زړونو کښے د نفرت او بغض جرړے داسے مضبوطے کړے وے چه د هغے پرے کول ډير ګران وو. د تخت نشينئ سره سم د مير اشرف په لاره کښے ډير مشکلات پيدا شول. يو طرف ته ايرانيانو د شاه حسين د ځوی طهماسپ د جنډے لاندے د خپلے ازادئ د پاره جد و جهد شروع کړو. او په بل لوری سلطنت روس او سلطنت عثمانی د ايران سلطنت يوبے مالکه او بے وارثه ملک اوګڼلو. او د خپلو خپلو سلطنتونو سره ئے د دے سلطنت محلقه صوبے اوګنړلے. او د اشرف مقابلے ته ئے سترګے برندے کړے. ميراشرف په خپل وس او تدبر په ډيرو مشکلاتو قابو بيا موند. ولے حالات دے حد ته رسيدلی وو چه د مير اشرف هر کوشش و محنت ځائے نهٔ نيولو. د هغهٔ په لاره کښے غټے بنديز دا وو چه هغهٔ ته د قندهار نه د پښتنو امداد بند شو. او د ايران په جګړو کښے هغه د داسے سپاهيانو نه په کار اخستلو مجبور شو چه د مير اشرف د مقاصدو په نسبت د هغوی همدردی د خپل لوټ سره زياته وه. او د دے ټولو د پاسه د هغهٔ مقابله د يو داسے سړی سره راغله چه په هغه زمانه کښے د هرچا د پاره نا قابل تسخير ثابت شو. دا سړے طهماسپ قلی خان وو چه وروستو د «نادر شاه» په نامه مشهور شو.

---

[1] پټه خزانه.

میراشرف د پنځو کالو پورې د هر دشمن مقابله اوکړه - او په ډیرو موقعو کامیاب شو. ولې په اخر کښې په کال سنه ۱۷۳۰ء د طهماسپ قلی (نادرشاه) د لاسه ئې تیښته اوموندله - او د قندهار په نیت روان شو - ولې په لاره کښې د یو بلوڅی سردار عبدالله خان د لاسه اووژلے شو. او د دهٔ په مرګ په ایران کښې د پښتنو اقتدار ختم شو.

په ایران کښې د پښتنو دے لنډ کنډ اقتدار دے ملک ته داسے نقصانونه اورسولو چه په هغ باندے د ټولو مورخینو اتفاق دے - په دے جنګونو کښې د ایران قریبًا لس لکه خلق مړهٔ شول - ډیرے عالی شانه ابادئ د زمکے سره هوارے - زمکے شاړے او بنجرے شوے - غلا غلتؒ او ډاکے زیاتے شوے - تجارت تباه شو - او د ملک امن امان ختم شو - فرانسیسی مؤرخ فیریر د دے خیال اظهار کوی - چه ،، پښتانهٔ د جنګ خو مړنی وو - ولې د بادشاهئ په چل نهٔ پوهیدل - د هغوی بس دغه کار وو چه په هر ځائے کښې به ئې د هر چانه که په زور او که په رضا وه - روپئ افستلے - ځکه د دے په نتیجه کښې بغاوتونه شروع شول - اګر چه دوئ ډیر فوځ جمع کړے وو - ولې د شاو جنګونو نه پس د دوئ فوځ ډیر لږ او کمزورے شو - د افغانستان د نوی سپاهیانو بهرتی په دوئ بنده شوه - نو د بدے ورځ دوئ د نورو قامونو سپاهیان نوکران کړل - او هغوی ئې په ضروری او اهمو ځایونو مقرر کړل - دا سپاهیان داسے وو چه وفادارئ ئې شکمنه او د جنګ سره ئې مینه کمه وه"

دے کښې شک نشته چه ایرانیان هم د خپل اقتدار په دور کښې په پښتنو ډیر ناوړه ظلمونه کړی وو - او د هغ په نتیجه کښې د ایران اقتدار ته دوئ دیکه ورکړه - دا هم بے ځایه نهٔ ده چه د میر محمود په بدګمانئ او ظلمونو کښې د ایرانیانو د سازشونو لوئے دخل وو - ولې د دے باوجود دا هم یو حقیقت دے چه پښتنو هم د خپل اقتدار په نشه کښې د قوانین قدرت د مکافات پروا او نهٔ ساتله - او د قدرت قوانینو چه کوم سلوک د ایرانیانو سره کړے وو - هم په هغه کروره ئې پښتانهٔ هم او تکول -

# نادرشاه افشار

د دهٔ اصلي نوم طهماسپ قلي او د پلار نوم ئې امام قلي وو. په کال سنه ۱۶۸۸ع کښې په خراسان کښې پيدا شوے وو. په قام ترک او د افشار قبيلے وو. د ځوانئ زمانه ئې د طوفان په شير وه. ډاکے به ئې کولے او لارے به ئې وهلے. په اوزبکو به ئې تاختونه کول. کله به په ځخوی بریالے او کله به د ځخوی په لاس کښې بنديوان وو. په دے ډول ئې لوئې نوم او شهرت حاصل کړو. ولے د خپلو بے اعتداليئو له کبله ئې ژوند په دار وو. تره ئې په قلات کښې حاکم وو. چه تنګ شو نو هغهٔ ته لاړ خو هلته ئې هم آرام او نهٔ کړو. بيا ئې ډاکے شروع کړے. دغه شان ډير داوٴ طلبه خلق ئې خوا له راغونډ شول. په دے زمانه کښې د معزول بادشاه شاه حسين ځوئې شهزاده طهماسپ هم د دهٔ د شهرت نه خبر شو. نو په خپل فوځ کښې ئې د شموليت دعوت ورکړو. طهماسپ قلي دا دعوت په دے شرط منظور کړو. چه دهٔ ته به وړانديني ټول جرمونه معاف وي. دا معافي نامه د هغهٔ تره ته اوليږلے شوه. او چه کوم وخت طهماسپ قلي د تره نه دا معافي نامه ترلاسه کړه. نو هغه ئې اووژلو. او د شهزاده نه ئې يوه بله معافي نامه اوغوښتله. دا معافي نامه هم ورکړے شوه. د دے نه پس دے د شهزاده ملازم شو. ولے لږے ورځے پس شهزاده د دهٔ د رويې نه داسے تنګ شو چه دے ئې باغي اوبللو. خو د طهماسپ قلي طاقت دومره زيات شو چه هغهٔ د شهزاده نه په زور ډير وسيع اختيارات اوترولل. او په هغهٔ ئې خپل ځان د هغهٔ د فوځونو سپه سالار اوټاکلو. او د خپل ذاتي جرأت له کبله ډير زر په ټول فوځ کښې هر دلعزيز شو. د دے نه پس ئې مازندران، خراسان، کرمان سيستان فتحه کړل. او بيا د ميراشرف د مقابلے په تکل شو. په دے ورځو کښې ميراشرف د "يزد" ښار محاصره کړے وو. طهماسپ قلي د دهٔ مقابلے ته روان شو.

د ميراشرف او طهماسپ قلي اوله مقابله په کال سنه ۱۷۲۸ع کښې د دامغان نه اووه ميله

په نمرخاته اوښوه ـ په دے جنګ کښے طهماسپ قلی د خپل جنګی مهارت په وجه په میر اشرف کامیاب شو ـ د میر اشرف دولس زره فوځ په دے جنګ کښے مړ شو. او هغه د باقی فوځ سره اصفهان ته راغے ـ په دغه ورځو کښے د طهماسپ قلی د پرله پسے فتوحاتو له کبله د ایرانیانو د قومی خود داری جذبه بیا ژوندئ شوی وه ـ او د پښتنو ویره د هغوی د زړونو نه وتلی وه. دغه وجه وه چه کوم وخت طهماسپ قلی د میر اشرف په تعاقب کښے اصفهان ته راورسیده نو د هغه فوځ دغه وخت د شمار د قطار نه وتلے وو ـ میراشرف د اصفهان نه ځلیریشت میله لرے په یو محفوظ مقام کښے د طهماسپ قلی د مقابلے د پاره خپل فوځ جمع کړے وو ـ خو طهماسپ قلی په دے موقع د جنګی مهارت نه کار واخست ـ او یوه شپه ئے په تیاره کښے په پښتنو چپاؤ اوکړو ـ پښتانه په بها دری او جنګیدل خو مزه ئے نه وه. ځلور زره مړه شول او نور د میر اشرف سره شیراز ته اوتښتیدل ـ طهماسپ قلی هم ور پسے وو ـ په شیراز کښے هم د میراشرف د پاره حالات موافق نه وو. نو هر څه ئے پرے ښودل ـ او په خپله د دوو ملګرو سره اوتښتید و او په سیستان کښے د یو بلوچ عبدالله خان د لاسه اووژلے شو ـ

پښتانه چه د ایران نه په وتلو مجبور شول ـ نو شهزاده طهماسپ د ایران بادشاه شو ـ خو دوه کاله پس طهماسپ قلی هغه معزول کړو ـ او د هغه په ځائے ئے د هغه ماشوم ځوئے "عباس" د ایران په تخت کښیناوه ـ او خپله د هغه سرپرست او سربراه شو ـ د دے نه پس ئے د عثمانی سلطنت نه د ایران صوبے ترلاسه کړے ـ د آرمینیا او جارجیا علاقے ئے هم فتح کړے ـ او د عثمانی حکومت سره ئے صلح اوکړه ـ په کال ۱۷۳۶ء کښے د ایران ماشوم شهزاده عباس مړ شو ـ دغه وخت طهماسپ قلی په امیرانو وزیرانو خپل ځان بادشاه منتخب کړو ـ او د نادر شاه شهنشاه ایران لقب ئے اختیار کړو ـ

په کال ۱۷۲۲ء کښے چه میر محمود د ایران په لام روانیدو نو هغه په قندهار کښے خپل ورور میرحسین په خپل ځائے پرے ښودلے وو ـ د میر محمود په موجودګئ کښے میرحسین د خپلے صوبے انتظام په ډیره ښه طریقه کړے وو ـ او د ایران د ماتوګړو هیڅ تاؤ تپ لا قندهار ته نه وو رسیدلے ـ ولے هر کله چه طهماسپ قلی (نادرشاه) په میراشرف بریالے شو ـ او بیائے په کال ۱۷۳۶ء کښے د ایران په تخت قبضه اوکړه ـ او د ایران د سلطنت ټوټے ئے بیا سره یو ځائے کړے ـ نو د دے نه پس د یو لک فوځ سره د قندهار د تسخیر په اراده راروان شو ـ او میرحسین ته ئے د خپل اطاعت پیغام ورا ولیږلو ـ ولے میرحسین هم د میر

ویس څوځ وو۔ او د خپل پلار په شان ئے خپله ازادی د خدائے یو لوئے نعمت گڼلو۔ نو د نادرشاه په جواب کښے دغه په خپل حفاظت کښے لګیا شو۔

د میرحسین د حکومت په زمانه کښے قندهار ډیره ترقی کړی وه۔ ټول خلق د آزادئ په خوږو پوهه شوی وو۔ نو چه د نادرشاه د حملے خبر خور شو۔ نو ټول پښتانه د میر حسین د جنډے لاندے تر اخری سلګئ د نادر شاه مقابلے کولو ته تیار شول۔ د قندهار حفاظتی مورچے او قلا په دغه زمانه کښے نا قابلِ تسخیر ګڼلے شوه۔ میرحسین د محاصرے د اوږدولی فکر هم اوکړو۔ او د فوځی سازوسامان نه علاوه د خوراک ډیرے ذخیرے ئے هم جمع کړے۔ نادرشاه راغۍ او قندهار ته نخاځ پرے وتو۔ د ځه مقابلے نه پس دغه ته دا خبره معلومه شوه چه د قندهار فتح کول به ډیر وخت اخلی۔ نادر هم د خپل هوډ نه اوړید ونکے نه وو۔ نو دغه څه خو د خپل فوځ د ډیرے دانړے په عرض او څه په دے عرض چه د محصورینو زړونه مات شی ۔ د زوړ ښار مقابل دیو نوی ښار په ابادولو لاس پورے کړو ۔او د دے نامه ئے نادر آباد کیښوده۔

نادر شاه په جوش و خروش قندهار محاصره کړو۔ خو محصورینو هم په ډیرو موقعو د خپل شجاعت ، همت او مستقلے ارادے ثبوتونه پیش کړل۔ په څو موقعو ئے د نادر فوځونو ته شکست هم ورکړه۔ په نادرشاه باندے د محصورینو د حوصلے ،عزم،همت او شجاعت لوئے اثر اوشو۔ دغه په خپله هم ډیر بهادر او په لویولویو کارونو باندے په اقدام کولو کښے به ئے د تذبذب نه کار نه اخستلو۔ او د دے سره د زړور او بهادر دشمن په قدر هم پوهیده۔ په دغه دا خوبی وه چه پرونی دشمنان به ئے داسے خپل کړل چه نن به ئے د دغه دپاره په سر ورکولو کښے څه صرفه نه کوله۔ د بختیاری قبیلے ځوانان چه نادر په ډیر زیار او کړاؤ ایل کړی وو۔ دغوی ئے داسے په خپل اعتماد کښے اخستی وو۔ چه د قندهار د مهم په اسانولو کښے د دغوی لویه برخه وه۔ دغه شان د هرات د علاقے ابدالیان دغه داسے په خپل تار راواړول چه د دغه په ټول فوځ کښے د ابدالی پښتنو نه د دغه زیات جانثار او اعتمادی سپاهیان نور څوک نه وو۔

د قندهار د محاصرے په دوران کښے نادرشاه ته د هند نه د مغل ایرانیانو خطونه پرله پسے راتلل۔ د دے خطونو دغه د هند حملے ته لیواله کړے وو۔ د دغه دا خواهش وو چه د قندهار د کشالے فیصله زر تر زره اوشوے۔ چه په هندے چخه اوویستلے۔ د یو کال د اوږ دے محاصرے نه پس په ډیر کړاؤ د قندهار د قلا بندئ د استحکاماتو په ماتولو

کښې څه جزوي کاميابي حاصله کړه- چونکه د پښتنو د شجاعت نه هغه متأثر شوے وو- نو هغهٔ د شاه حسين سره په دے شرط صلح اوکړه- چه شاه حسين به د قندهار ګورنر وي- او د هغهٔ د فوځ يوه حصه به د نادرشاه په فوځ کښې د هند په حمله کښې شامليږي او د دے نه علاوه مير حسين به د نادرشاه په نوي اباد کړي ښار کښې استوګنه اختياروي- د دے نه پس په معاهده عمل اوشو- مير حسين نوي ښار ته راغے- او نادرشاه د انده خطرو د لرکولو په غرض د زوړ ښار ټول استحکامات وران کړل- او د مزکے سره ئے هوار کړل- د توقع نه خلاف نادرشاه د محصورينو سره د فياضئ او رواداري سلوک اوکړو (۱۱۳۸ھ).

ولے د مير حسين په مقله نادرشاه بدګمانه وو- او د هغهٔ سره ئے بے لوظي اوکړه- د معاهدے برخلاف نادرشاه "مير حسين" او د هوتکو ټوله شاهي کورنئ مازندران ته د استوګنے په غرض اوليږله- او خپلو ماهرينو ته ئے هدايت اوکړو چه په مناسب موقع مير حسين اووژنئ- چنانچه د مازندران د استوګنے په وخت کښې د نادرشاه د محصورينو له خوا مير حسين ته زهر ورکړے شول- او د دے زهر په نتيجه کښې هغه په کال (۱۱۵۲ھ) کښې مړشو- د مير حسين د مرګ خبر نادرشاه ته هغه وخت اورسيد چه هغه د هند د مهم نه راستون شوے او د اباسيند غاړے ته رارسيدلے وو[1]-

د ميرويس په کورنئ کښې مير حسين يو قابل او ښکلے ځلمے وو- د پټے خزانے د روايت مطابق په ۲ ربيع الاول ۱۱۲۷ھ کښې د سيوري په علاقه کښې د قلات په مقام زيږيدلے وو- د مير حسين په حکومت کښې د غزني پورے علاقه شامله وه- په ۱۱۳۸ھ کښې هغهٔ د شال (د موجوده کوټے علاقه) او زوب علاقے هم فتح کړے- او په کال ۱۱۳۹ھ کښې د ډيره جاتو او ګومل پورے علاقے په خپل اقتدار کښې راوستلے- خطبه او سکه ئے په خپل نوم جاري کړي وه-

مير حسين په خپله هم شاعر وو- او د شاعرانو هم قدردان وو- د مير حسين دا غزل د پټے خزانے مؤلف په خپل کتاب کښې د نمونے په ډول ليکلے دے- او دا کتاب (پټه خزانه) هم د مير حسين په فرمائش مرتب شوے دے-

## د مير حسين غزل

بيلتانهٔ دِ د غمونو په چپاو چور کړم  په تيارو کښې د هجران ئے له تا دور کړم

---

[1] تاريخ سلطاني ص۹۱ په حواله د پښتانهٔ شعرا اول ټوک ص۲۱۸

بیلتانهٔ دِ هسې اوښکې راځورې کړې ستا د فکر په گرداب کښې تل عبور کړم
د فراق پړې ے کیښوت و مرئ ته په جهان کښې ئے رسوا لکه منصور کړم
په وصال دِ هم نابناد یمه دلبره د بیلتون فکر په زړه کښې ناصبور کړم
د بانو غشیے اوخوړ په څیګر کښې غمازانو په غمزو غمزو مهجور کړم
خلق یاد زما د عشق په لیونو کا
زهٔ حسینؔ محبت هسې رنګ مشهور کړم[۱]

لکه چه وړاندے مو وئیلی دی د قندهار د صوبے د ازادئ نه پس د هرات صوبه هم د اسدالله خان ابدالی په مشرئ کښې د ایرانی حکومت نه ازاده شوی وه۔ او د نادرشاه د عروج په وخت کښې د هرات او سبزوار په علاقه کښې د ابدالیانو حکومت وو۔ ولے په کومو ورځو کښې چه میر محمود غلجي د اصفهان محاصره کړی وه۔ او ملک محمود سیستانی د اصفهان مدد ته ورغلے وو۔ او د هغ په نتیجه کښې د محمود غلجي له خوا د خراسان په علاقه د محمود سیستانی اقتدار منلے شوے وو۔ نو له دے کبله د هرات او سبز وار علاقه څه موده د محمود سیستانی په تصرف کښې وه۔ ولے د میر محمود د مرګ نه پس د میر اشرف او ایرانیانو د جنګونو په زمانه کښې په دے علاقه کښې بادشاه ګردی وه۔ او چونکه په دے ټوله علاقه کښې د ابدالیانو طاقت زیات وو۔ په دے وجه میر حسین غلجي والئ قندهار په دے ابدالیانو خپل اقتدار نهٔ وو قائم کړے۔ او دوئ بیخی آزاد وو۔

هرکله چه نادرشاه د ایرانی سلطنت نه د شوکیدلو شوو ټوټو د دے سلطنت سرِ بیا د ګنډلو اراده اوکړه۔ نو په دے لړ کښې هغهٔ په هرات او سبزوار هم حمله اوکړه۔ په دے حملو کښې ابدالی پښتنو د نادر شاه مقابله په ډیر صبر او تحمل کړی وه۔ په دے جنګونو کښې میرحسین غلجي هم د ابدالیانو امداد ته درے زره فوځ د خپل یو امیر ،، سیدال غلجي ،، په کمان کښې لیږلے وو۔ ولے پښتنو که هرڅومره د خپل شجاعت مظاهره اوکړه۔ لیکن د نادرشاه مقابلے ته ټینګ نهٔ شول۔ څنے په جنګونو کښې مړهٔ شول۔ څنے او تښتیدل۔ او څنو د نادر شاه اطاعت او منهٔ۔ په دے تښتیدلی ابدالیانو کښې ذوالفقار خان او احمد خان هم وو۔ چه د سیدال غلجي سره قندهار ته تښتیدلی وو۔ په هرات باندے د نادرشاه د حملے په وخت د ابدالیانو او نادرشاه ترمینځه جنګونو نه هم د دے ذوالفقار خان په ماتئ کښې شوی

---

۱ے پټه خزانه ص۱۱۰

وو۔ لیکن د قندهار د استوګنې په دوران کښې د میرحسین په زړهٔ کښې د دوئ ( ذوالفقارخان اواحمد خان ) په باب کښې څه غلط فهمئ پیدا شوې وې۔ او د هغې په وجهٔ دا دواړه ورو نه نظر بند کړی وو۔

د هرات ، سبزوار او قندهار په جنګونو کښې نادرشاه د پښتنو د بے مثله شجاعت نه ډیر متاثر شوے وو۔ چونکه هغه په خپله هم یو بهادرانسان وو نو د هر شجاع او بهادر انسان به ئې قدر هم کولو۔ دغه وجه وه چه څه وخت هغهٔ د قندهار دګشالے نه اوزګار شو او د هند د فتح په تکل کښې وو نو هغهٔ د پښتنو یو نوے فوځ مرتب کړو۔ په دے فوځ کښې دولس زره ابدالی او څلور زره غلجي پښتانهٔ وو۔ دابدالی فوځ مشران اتهٔ کسه او د غلجي فوځ مشران دوه کسه وو۔ او د دے ټول فوځ کماندار اعلی نورمحمد خان عنیزے (ابدالی) وو۔ دا فوځ د خپل شجاعت ، جرأت او وفادارئ په وجه نادرشاه ته ډیر نژدو وو۔ او دے خلقو هم خپل ځان په هره موقعه د هغهٔ د هر اعتماد اهل ثابت کړے وو۔ دا پښتانه فوځیان څه رنګ چه په زړورتیا او شجاعت کښې نومیالیان وو۔ دغه رنګ د نادرشاه په هر حکم منلو کښې هم ممتاز وو۔ او په ډیرو موقعو ئې د نادرشاه داسے قیمتي امداد کړے وو چه که دوئ داسے داخلاص او جانثارئ نه کارنهٔ وے اخستے نو ممکنه وه چه د نادرشاه د هند د فتوحاتو نه خالی پاتې وے۔

نادرشاه چه د قندهار د شخړے نه اوزګار شو نو د هند په تکل د کابل په لور روان شو۔ دغه وخت کښې هم دکابل صوبه د هند په مغل سلطنت کښې شامله وه۔او د پخوانی دستور مطابق د پیښور علاقه هم د دے صوبے یو حصه وه۔ د نادرشاه د حملے په وخت کښې د هندوستان په تخت محمد شاه مغل ناست وو۔ چه د خپلے عیاشئ له کبله د"محمد شاه رنګیلا" په نامه هم مشهور دے۔ په دے ورځو کښې د کابل ګورنر شیرخان او نائب ګورنر ناصرخان نومیدهٔ۔ چه په پیښور کښې به اوسیدهٔ۔ نادرشاه اول غزنے او نیوو۔ او بیا ئې د کابل ګورنر شیرخان ته د خپل اطاعت پیغام اولیږلو۔ ولے شیرخان د اطاعت په ځائې مقابله اوکړه۔ ولے په جنګ کښې ئې تیښته اوکړه۔ دکابل د تسخیر نه پس نادرشاه د جلال آباد علاقه هم اونیوله۔او بیا په خیبر راننوت۔ دغه وخت نادرشاه ته داسے کراؤ پیښ شو چه هغه ئې ډیر بے بنده کړو۔ په دے موقع که د هغهٔ د پښتنو خاص فوځ د سرفروشئ نه کارنهٔ وے اخستے نو د خپل ټول شان و شوکت او زور و قوت باوجود به د نادرشاه د پاره د پیښور په میدانونو کښې قدم کیښودل ګران شوی وو۔

په دې زمانه کښې د هند مغل سلطنت هم د ایران د صفوي سلطنت په شان د خپلو بددیانته او بدکرداره امیرانو د لاسه د ذلت انتها ته رسیدلے وو۔ په ټول ملک کښې د حکومت د کمزورئ په وجه اړے ګړے وو۔ د خیبر د استوګنو قامونو هغه ماجبونه او وظیفې چه دوئ د هر حکومت په دور کښې د درے د عبور و مرور د حفاظت او ضمانت په عوض کښې وصولے کړے وے۔ او د مغل حکومت نه به ئے هم وصولولے۔ په دغه ورځو کښې به دا ماجبونه د دے صوبے بددیانته امیرانو په خپله خوړل۔ او قبائیلو ته به ئے نهٔ ورکول۔ دغه وجه وه چه د خیبر دره د شاهي فوځونو د عبور و مرور د پاره هم غیر محفوظه وه۔ د نادرشاه د عبوُر په وخت کښې دا قبائیل اګرچه د مغل حکومت په مرسته نهٔ وو ولاړ۔ ولے دا خبره هم د دوئ د قامي غیرت او خود دارئ د پاره یوه تازیانه وه۔ چه نادر شاه دِ محض د خپلے تورے په زور د دوئ په زمکه تیر شي۔ دغه وجه وه چه دوئ د نادر شاه په لار کښې د یر غرځونه واچول۔ ټوله لارئے ورانه کړه۔ ګودرونه ئے بند کړل۔ د غرونو په څوکو ئے مورچے اونیوے۔ ځائے په ځائے ئے کندے اوکنستلے۔ او د نادر شاه په فوځونو ئے حملے شروع کړے۔ کله به ئے د هغهٔ د فوځ په وروستۍ حصه چپاؤ اوکړه۔ او کله په یو اړخ او کله په بل اړخ۔ غرض نادرشاه ئے تر پوزے راوست۔ په سوؤنو فوځیان ئے ترینه مړهٔ کړل۔ او یومیاشت ئے اتال کړو۔ او د دے نه به ئے هم زیات اتال کړے وو که چرے نادرشاه خپله توره په تیکي کښې نهٔ وے اچولے۔ او د دوئ سره ئے روغه جوړه نهٔ وے کړے۔ غرض نادر شاه د دے قبائیلو سره صلح اوکړه۔ د دوئ شرطونه ئے اومنل۔ او بیائے په خپل فوځ کښې هم دغه قبائیل (افریدي، شنواري) شامل کړل۔ او پېښور ته راښکته شو۔ د پېښور حاکم ناصرخان د مقابلے څه کوشش اوکړو۔ ولے د نادر په لاس کښې بندیوان شو۔

د پېښور نه پس نادر شاه لاهور هم فتح کړو۔ بیا په ستلج پورے وتو۔ او په ۱۳ر فرورئ سنه ۱۷۳۹ء کښې د کرنال په مقام د مغل فوځ سره مخامخ شو۔ په جنګ کښې مغل فوځ تیښته اوکړه۔ او نادرشاه په دهلي هم قبضه اوکړه۔ د نادر شاه د راتلو په دوئمه ورځ د دهلي خلقو د نادر شاه د مرګ خبره مشهوره کړه۔ او د ښار لوچ لونډو د هغهٔ په فوځیانو راټکي شول۔ او څینے ئے په کښې مړهٔ کړل۔ په دے موقع نادرشاه په خپله خلقو ته ځان ښکاره کړو۔ مدعائے دا وه چه دا فساد بند شي۔ ولے د دهلي خلق لا هغه شان په خود نهٔ وو۔ او د هغهٔ د فوځیانو په وژلو لګیا وو۔ په دے خبره نادرشاه هم د خود نه اووت۔ او خپلو فوځیانو ته ئے د قتل عام حکم اوکړو۔ اتهٔ ګینټے د نادر شاه فوځ د دهلي

د خلقو په وژلوکښې لګيا وو. د وينو رودونه اوبهيدل. په زرګونو خلق او وژلے شول.
بې شماره کورونه لوټ او او سوزولے شول. د دهلي ښار داسے تباه شو چه د هغې
د تباهۍ ياد د« شامتِ اعمالِ ما صورتِ نادرګرفت ، په مشهور متل کښې تر او سه
ژوندے دے.

نادرشاه په دهلي کښې اته پنځوس ورځے اتيال شو. او بيا د ايران په نيت روان شو. د
دهلي سلطنت ئے بيا محمد شاه ته اوسپارلو. ولے د سلطنت د خزانو نه ئے ټول قيمتي
جواهرات چه(کوهِ نور او درياځ نور پکښې هم شامل وو ) الماس ، زر او د شاه جهان مشهور
تخت طاوس د ځان سره واخستل. او دغه شان ئے په اقتصادي لحاظ سره د هندوستان
سلطنت ديواليه کړو.

نادرشاه چه د هندوستان د خزانے نه څومره قيمتي جواهرات او زراوړی وو.
د هغې اندازه د درے يمو او اوۀ کروړو پونډونو په مينځ مينځ کښې ده. د نادرشاه دے
حملے مغل سلطنت نۀ صرف په اقتصادي لحاظ سره اوړچکولو. بلکه د دے نه پس د اقتدار
وطاقت په لحاظ هم دا سلطنت هسے په نوم پاتے وو. او په ټول ملک کښې طوائف الملوکي
شروع شوه.

نادرشاه چه په اباسيند راپورے وتو نو د هغۀ د دے بے حرته دولت اوازه د
خيبر د قبائيلو تر غوږونو هم رسيدلې وه. او هغوی په مناسب ځايونو د دۀ هرکلي ته
مورچے نيولے وے. په دے موقع د هغۀ پښتون فوځ بيا د ډيرے جانفشانۍ نه کاروا
خست. ولے د دوی د بے مثله شجاعت او مقابلے نادرشاه تر هغه وخته د خيبر لاره
د خپل ځان د پاره ازاده نۀ کړے شوه. ترڅو چه ئے دے قبائيلو ته لس لکه روپۍ نۀ وے
ورکړے. د دے نه پس نادرشاه د کابل په لار قندهار ته لاړ. او څه موده پس ئے سنده
بخارا او د خوارزم حکومتونه په خپلے باجګزارۍ مجبور کړل. او بيا مشهد ته راغے. دغه ښار
ئے د خپل سلطنت صدر مقام اوټاکلو.

د نادرشاه وروستۍ زمانه د غمونو او کړاؤنو نه ډکه وه. څه موده پس هغه په
خپل ځوی رضا قلي بدګمانه شو. او د هغۀ نه ئے سترګے اوويستلے. د دے نه پس ئے
په ايشيائے کوچک حمله اوکړه. د ترکو برخلاف ئے کاميابي حاصله کړه. د خپل عمر په
اخری کالونوکښې د هغۀ بدګماني په هرځا زياته شوه. د هغۀ سره دا وهم ملګرے شوے
وو چه خپل ايراني فوځ ئے وژني. د شک او وسواس په دے فضا کښې د هغۀ د اعتماد

قابل صرف د هغهٔ پښتون فوځ وو. او د دوی په وفادارۍ د هغهٔ پوره پوره اعتماد وو. د پښتنو سره د نادر شاه دے امتیازی سلوک د ایرانی فوځ په زړونو کښې د پښتنو او نادرشاه د واړو سره د نفرت او بغض جذبات نور هم تیزکړل. د دے دوه زُخه بد گمانۍ نتیجه دا شوه چه نادر شاه د خپل ایرانی فوځ د ټولو سرکرده امیرانو د وژلو اراده اوکړه. ولے دا راز څرګند شو. او د هغهٔ امیران په هغهٔ وړومبی شول. او د ۹ ر جون سنه ۱۷۴۷ په توره شپه کښې چه نادر په خپله خیمه کښې په خوبِ خوب اوده وو. د ایرانی فوځ سرکرده امیران ورننوتل. او هغه ئے په ډیرے بے دردۍ اووژلو.

# د سدوزو بادشاهي

احمد شاه ابدالي چه د سدوزو د سلطنت باني دے۔ د ملک محمد زمان خان سدوزي ځوئ وو۔ او د هغه ملک سدو په اولاد کښې وو۔ چه هغۀ ته د شاه عباس اعظم د لورې نه د هرات او قندهار ترمينځه د سړک د يوے حصے د حفاظت ذمه واري سپارلې شوې وه۔

لکه چه وړاندے مو وئيلي دي په کومو ورځو کښې چه نادر شاه هرات محاصره کړے وو نو په دغه جنګونو کښې ذوالفقار خان او احمد خان دواړه وروڼه قندهار ته تښتيدلي وو۔ او کوم وخت چه قندهار د نادر شاه لاس ته راغے۔ نو دا دواړه وروڼه هم د نادر شاه په خدمت کښې پيش کړے شول۔ نادر شاه د هرات د جنګونو په وخت کښې د ذوالفقار د شجاعت نه متاثر شوے وو۔ په دے موقع چه ئے دا دواړه وروڼه اوليدل نو د دوئ د شرافت او ظاهري خط وخال نه هم ډير متاثر شو۔ او دا دواړه روڼه ئے هم د نورو ابدالي پښتنو سره د استوګنے په غرض مازندران ته اوليږل[1]۔ دغه وخت احمد خان د څوارلسو پنځلسو کالو يو هلک وو۔ ولے چه نادر شاه هندوستان ته روانيدو نو احمد خان ئے را اوبللو او د مازندران د علاقے انتظام ئے په دهٔ اوسپارلو۔ دا کار احمد خان په داسے ښه طريقه سرته اورسولو چه کوم وخت نادر شاه د هند نه بيرته راغے نو هغۀ د احمد خان په کارګزارئ دومره خوشحال شو چه دے ئے د هغه پښتون فوځ يو افسر مقرر کړو کوم چه د نادر زړهٔ ته ډير نزدے وو۔ او د دے مينے په وجه د ايراني فوځ او د هغوی د سردارانو د پښتنو او نادر شاه دواړو سره بغض او کينه پيدا شوی وه۔

احمد خان د مضبوط ارادے خاوند، ډير زړور، خوږ ژبانه او د خپل لوظ قول

---

[1] د هرات د تسخير نه پس نادر شاه د دے صوبے ابدالي پښتانه مازندان ته د استوګنے په غرض ليږلي وو۔

ډیر پابند وو. دغه وجه وه چه د خپل تمام سپاهیانو به د هغهٔ سره ډیره مینه لرله. او د هغهٔ وینا به ئے په سرسترګو قبلوله. په احمد خان کښے په خپله هم د حکم منلو عادت پروت وو. او په دے ځوی هغه د نادرشاه زړه ته نزدے شوے وو. دغه وجه وه چه نادرشاه به هرګران کار احمد خان ته سپارلو. او احمد خان به هغه په ډیره مینه او ښهٔ طریقه سرته رسولو.

کوم وخت چه نادرشاه په خپله خوابګاه کښے د خپلو ایرانی سردارانو د لاسه قتل شو. دغه وخت احمد خان د نادرشاه د بدل اخستلو په غرض خپل فوځ راجمع کړو. او اوزبکانو ئے هم خپل ملګری کړل. او د ایرانی فوځ سره ئے د جنګ اراده ښکاره کړه. ولے د نادرشاه د قتل په سازش کښے د ایرانی فوځ ټول سرداران شامل وو. او د ټول ایرانی فوځ سره مقابله کول ګران کار وو. په دے موقع احمد خان دا غوره اوګڼله چه د نادرشاه د خزانے څه قیمتی جواهرات ترلاسه کړی. او خپل وطن ته لاړ شی. چنانچه د پښتنو ټول فوځ د قندهار په نیت راروان شو. د نادرشاه ترمرګه پورے د دے فوځ کماندار اعلیٰ نور محمد خان علیزے وو. د نادرشاه په وخت کښے که ټولو پښتنو نور محمد خان د کماندار اعلیٰ په ډول تسلیم کړے وو نو د دے وجه دا وه چه دغه وخت نادرشاه د دوئ بادشاه وو. او د شاهی ملازمت په لړ کښے دوئ ټول یو شان وو. او د نور محمد خان حیثیت د نورو پښتنو نه د پښتون ولئ په رنګ کښے څه زیات نهٔ وو. ولے د نادرشاه د مرګ نه پس حالات بدل شوی وو. د اطاعت مرکز (د بادشاه ذات) د میڅ نه وتلے وو. دغه وخت دا ټول فوځ ازاد او د دے هر فرد د یو شان حیثیت خاوند وو. نو په دے وخت کښے دوئ ته د نور محمد خان سرداری ښه نهٔ ښکاریدله. نو د هغهٔ د مشرئ نه ئے ځان ازاد کړو. او س د دے فوځ حیثیت د یو شاهی فوځ نه بلکه د یو قامی فوځ وو. او دوئ هم په دے حیثیت کښے قندهار ته راغلل.

د پښتنو د دے خاص فوځ کوم لس سرداران چه نادرشاه مقرر کړی وو. هغوی په خپلو کښے صلاح اوکړه. او په دے خبره متفق شول چه زمونږ د غلامئ اصلی وجه زمونږ په خپلو کښے بے اتفاقی ده. او د دے بے اتفاقئ په نتیجه کښے زمونږ طاقت په خپلو کورنو

---

له د نادرشاه د قتل په موقع کوه نور احمد خان ترلاسه کړو. وروستو دغه قیمتی کاڼے د شاه شجاع نه رنجیت سنګه اوترولو. او د سکهانو د حکومت د سقوط نه پس انګریزانو ته په لاس ورغلو.

جنګونو کښې خرځ کیږی. او ددې باهمی اختلاف په وجه دشمن په موږ کښې لاره اوباسی. که چرې موږ په خپلو کښې اتفاق اوکړو. او په خپل مینځ کښې یک جهتی پیدا کړو. نو دشمن په زور په موږ غلبه بیا نهٔ شي موندلې. ددې نه پس هغوی دا فیصله اوکړه چه په هر دستور چه وی دایران نه خپل تعلق پرې کول ضروری دی. او دخپلې ازادی کومه موقع چه موږ ته په لاس راغلې ده. ددې نه فائده اخستل پکار دی. د دې مقصد دحصول په غرض دوئ دا خبره غوره کړه چه دټولو مشرانو په صلاح په خپل مینځ کښې یو سړے بادشاه کول پکار دی.

دبادشاه دانتخاب په غرض دے مشرانو د قندهار د علاقې د ټولو قامونو مشرانو ته دعوت ورکړو. او په دے جرګه کښې دابدالیانو، غلجیانو، بلوڅو، هزاره او قزلباشو ټولو مشران شامل شول. دبادشاه دانتخاب جرګه د قندهار سره نزدو دشیر سرخ بابا په مزار کښې جمع شوه. ولے په دومره مشرانو کښې چه د هرې قبیلې مشر به خپل حق د نورو نه زیات ګڼلو. د بادشاه منتخب کول څه اسانه خبره نهٔ وه. پرله پسې په دے غرض اتهٔ جرګې اوشوې. او په هره جرګه کښې د هر سردار حق پیش شو. او بحث پرِ اوشو. ولے تر اوسه پورے په دے جرګو کښې د احمد خان دحق یادګیرنه هیڅ نهٔ وه کړې. او نهٔ په خپله هغهٔ خپل ځان وړاندے کړے وو. په نهمه جرګه کښې د حاجي جمال خان محمدزی په حقله ډیر سرداران مائل وو. دا سردار د هغه "محمد" د اولاد نه وو کوم چه د شاه عباس د لورې نه د ملک سدو سره د بارک زو قبیلې مشر شوے وو. خو فیصله په دے جرګه کښې هم او نهٔ شوه. ځکه چه ځنې طاقتور سرداران د حاجي جمال خان مخالف هم وو.

په دے جرګو کښې به صابر شاه نومے یو پرهیزګار او نیک سړے هم موجود وو. او هغه د احمد خان دسنجیده رویې نه ډیر متاثر شوے وو. ځکه چه احمد خان تر اوسه د خپل ځان په حقله هیڅ هم نهٔ وو ویلی. په نهمه جرګه کښې چه هم څه فیصله او نهٔ شوه نو صابر شاه پورته شو. او دے سردارانو ته ئے اوویل! د خدائے په خاطر دا جرګې پریږدئ. احمد خان په تاسو کښې د بادشاهئ لائق دے. هغه یو ډیر دروند سنجیده او دوربماغ خاوند دے. او د بادشاهئ ددے لوئې ذمه وارئ اوچتولو د پاره خدائے پاک پیدا کړے دے. که چرې تاسو هغه په خپله خوښه او رضا صلاح خپل بادشاه او نهٔ منئ نو د خدائے په قهر به اخته شئ. د دے نه پس هغهٔ د یو نزدو پټي نه دا وربشو خید یو قوده راپرے کړه. او د احمد خان د سر نه ئې تاؤ کړه. او ورته ئې اووے. دا دِ

خدائے پاک ستا تاج کړی - د صابر شاه د دے کاروایئ نه پس نور و سردارانو هم خپلے خپلے دعوے پریښودے - او د هغهٔ په بادشاهئ رضا شول - او ټولو په اتفاق د هغهٔ بیعت اوکړو - ولے د حاجي جمال خان دا خبره هم اومنلے شوه چه د وزارت عهده به د بارک زو په قبیله او په بارک زو کښے به د محمد زو په څانګه کښے وی -

احمد شاه په اکتوبر کال ۱۷۴۷ء کښے په قندهار کښے د پښتنو بادشاه شو - د تخت نشینئ په وخت کښے د هغهٔ عمر درویشت کاله وو - احمد شاه بادشاه خو شو - ولے د بادشاهئ د پاره خزانه نهٔ وه - او د حکومت د کار چلولو او د فوځ د تنخواه د پاره ئے څه نهٔ لرل - خو دا ګرانه هم هغهٔ ته خدائے پاک اسانه کړه - په دے ورځو کښے دهٔ ته اطلاع ورکړے شوه چه د نادر شاه د پاره د سنده او پنجاب د باج و خراج رقم دا روان دے - او دا قافله به د قندهار په خوا کښے تیریږی - دا رقم په شمیر کښے شل لکه اشرفئ وو - احمد شاه دا خپل یو غیبي امداد اوګڼلو - قافله ئے اونیوله - او رقم ئے ترلاسه کړو - همسے هم په دے رقم د نادر شاه د ایراني امیرانو په نسبت د احمد شاه حق زیات وو - ځکه چه هم دے د نادر شاه وفادار او د هغهٔ اصلي جانشین وو - دا رقم هغهٔ په خپلو سردارانو او سپاهیانو اووېشلو - او د ملک و قام د ښېګړے نور کارونه ئے پرے اوکړل - د احمد شاه د دے فیاضئ د هغهٔ اثر په خپل قام باندے داسے نښهٔ او پائیدار قائم کړو چه وروستو د هغهٔ د شهرت او نیکنامئ سبب شو - د دے نه پس احمد شاه خپل لقب « دُرِّ دوران » کېښود - د دغه وجه ده چه د دوئ قبیله د درانیانو په نامه مشهوره شوه -

د تخت نشینئ نه پس د احمد شاه د وړاندے دوه لوئے مسئلے وے - یوه غټه مسئله د خورے ورے قبیلے په یو مرئ کښے پیړل او د هغوی نه یو قام جوړول وو - او دوئمه د خپل نوی سلطنت اندروني تنظیم او مضبوطیا - د اولے خبرے د پاره هغه ښهٔ موزون وو - په خپله پښتون وو او په پښتنو کښے لوئے شوے وو - د روڼ دماغ او سرے سینے خاوند وو - د پښتنو په خوی بوی ښهٔ پوه وو - او د پښتنو د دودونو ، دستورونو نه ښهٔ خبردار وو - په دے وجه هغهٔ د پښتنو قبائیلو په یو مرکز راغونډولو - او د یو قام حیثیت ورکولو کښے کامیاب شو - احمد شاه وړومبے پښتون وو - چه ټول پښتانهٔ ئے د عزیز ولئ په رنګ کښے د یو بل سره اوګنډل - د عزیز ولئ او قام ولئ کوم خیال چه احمد شاه په ټولو پښتنو کښے پیدا کړو - د دهٔ نه وړاندے په هغ کښے یو پښتون باچا هم نهٔ وو کامیاب شوے -

د غور و فکر نه پس هغهٔ دا خبره غوره کړه چه د اختیار و اقتدار ټولے چینے یو ځائے ته راغونډول د خطرے نه خالی نهٔ دی. او د سلطنت په انتظام کښے د حد نه زیات مرکزیت پیدا کول د نقصان باعث کیدے شی. په دے غرض هغهٔ دا اراده اوکړه. چه د حکومت په اقتدار کښے خپل نور خلق هم شامل کړی. او ټول اختیارات په خپل ذات کښے جمع نهٔ کړی. د دے مقصد د پاره هغهٔ ټول اختیارات په دوؤ حصو کښے اووېشل. د قبائیلو اندرونی معاملات او انتظام هغهٔ د هرے قبیلے خپل خپل مشر ته حواله کړو. او هرے قبیلے ته ئے د خپل ځان د پاره د مشر خوښولو حق ورکړو. د دے په بدل کښے ئے په هرے قبیلے دا فرض عائد کړل. چه د بیرونی دشمن سره د جنګ په موقع به د بادشاه مدد ته په یو خاص تعداد کښے سړی ورکوی. او د دے خدمت په عوض کښے به بادشاه هغوی ته تنخواه ورکوی. د دے نه علاوه نور اختیارات چه د ملک او قام د عامو معاملاتو سره ئے تعلق لرلو. هغه ئے په خپل لاس کښے اوساتل. او د خپلو اختیاراتو په نفاذ کښے به ئے هم د لویو لویو سردارانو نه صلاح و مشوره اخستله. غرض په دے دستور که هغهٔ یو طرف ته د قبائیلو سرداران د خپل ځان سره په اقتدار کښے شریک کړل. نو بل لور ته هغهٔ په دے ذریعه په پښتنو کښے د خپل مدد په خپله کولو جذبه هم پیدا کړه.

د خپل حکومت د انتظام چلولو په غرض هغهٔ د قبائیلو د سردارانو یوه جرګه مقرر کړه. په دے جرګه کښے هغهٔ نهه کسه سرداران شامل وو. کوم چه د نادرشاه په وخت کښے د هغهٔ د خاص پښتون فوځ سرداران وو. او د احمدشاه سره ئے په شریکه کارونه کړی وو. په هره معامله کښے به ئے د دے سردارانو په مشوره کار کولو. د احمدشاه خیالات ډیر اوچت وو. او د پښتنو د طبیعت موافق وو. هغهٔ به خپل ځان له پښتون بادشاه وئیل. او په هر لوئے کار کښے به ئے د پښتنو نه د پښتون ولئ د جذبے زیراثر اپیل کولو. دغه وجه وه چه هر چا به د هغهٔ په خبره امنا کوله. او هیڅ کله به تر چا انکار نهٔ کولو. د تخت نشینئ نه پس هغهٔ د پښتنو د ټولو قبیلو نه د یوے خبرے خواست اوکړو. او هغه دا وو چه "د خدای د پاره ننګ اوکړئ. او یو موټے شئ"

د سلطنت د ابتدائی تنظیم او استحکام نه پس هغهٔ د ټولو قبائیلو د مشرانو یوه جرګه راوبلله. او د هغوی په مخکښے ئے د پښتنو د هغه علاقو د ازادولو تجویز پیش کړو. کومے چه لا تراوسه د ایران او مغل سلطنتونو حصے وے. ټولو مشرانو په دے تجویز امنا اوکړو. اول د غزنی د تسخیر تجویز منظور کړو. په دغه ورځو کښے د کابل صوبه دار هم

هغه ناصرخان وو چه د نادرشاه نه په پېښور کښې تښتېدلے وو. او بیا نادرشاه په خپل وخت کښې د کابل صوبه دار مقرر کړے وو. نادرشاه د مرګ په وخت کښې د غزني علاقه هم د ناصرخان په ګورنرۍ کښې شامله وه او په پېښور هم د ده حکومت و. احمدشاه چه د ناصرخان نه د خپل اطاعت مطالبه اوکړه نو هغه سرکشي اختیار کړه - او خپل ځان ئے د مغل حکومت ملازم ښکاره کړو. په دے کښې د هغهٔ مراد خپله خودمختاري حاصلول وو. ناصرخان د احمدشاه د پیغام په جواب کښې د مقابلے تیاري شروع کړه.

احمدشاه د غزني او کابل د تسخیر په اراده راروان شو. د غزني حاکم مقابله اونهٔ کړه. ښار ئے پرېښو. ولے ناصرخان په کابل کښې مقابلے ته تیار وو. د هغه وخت په کابل کښې د ناصرخان سره د قزلباشو دولس زره فوځ هم موجود وو. چه نادرخان دلے پرے ښودلے وو. د دے فوځ نه علاوه ناصرخان د اوزبکو او هزاره قامونه هم په فوځ کښې بهرتي کړل. ولے د دے خلقو د احمدشاه په مقابله کښې د وطن دارۍ په لحاظ د جنګ کولو نه انکار اوکړو. احمدشاه د قزلباشو سره هم د قبائیلي خود مختارۍ وعده اوکړه. او د دے نتیجه دا شوه چه ناصرخان د څه معمولي مقابلے نه پس پېښور ته را اوتښتېدو. په کابل د احمدشاه قبضه شوه.

احمدشاه د ناصرخان په تعاقب کښې پېښور ته راغے. ولے هغه په اباسیند پورے وتو. او د چچ هزارے علاقے ته لاړ. خو احمدشاه هم ورپسے وو. چچ هزارے علاقه هم د احمدشاه په قبضه کښې راغله. ناصرخان لاهور ته اوتښتېدو. او احمدشاه د پېښور د میداني علاقے ټول پښتانهٔ په خپل حکومت کښې شامل کړل. د دے قبائیلو ته هم هغهٔ هغه کورنۍ خود مختاري ورکړه. کومه چه هغه نورو پښتنو قبائیلو ته ورکړے وه. په دے باب کښې د احمدشاه حال د نورو حکمرانانو په نسبت ډیر ښهٔ وو. احمدشاه به د پښتنولۍ د جذبے ماتحت د دے پښتنو قبائیلو سره سلوک کولو. او د دے جذبے زیر اثر به دے پښتنو قبائیلو هم د هغهٔ مرستے ته غاړه کېښودله. احمدشاه د پېښور د علاقے ډیر پښتانهٔ هم په خپل فوځ کښې شامل کړل. او بیا د پېښور نه د لاهور د حملے په اراده روان شو.

په دغه ورځو (سنه ١٧٤٨ع) کښې د لاهور ګورنر حیات الله خان نومېدهٔ. چه د ذکریا خان ځوئے او د مغل بادشاه محمدشاه د لورې نه مقرر وو. په اوله کښې دے ګورنر د خپل بادشاه سره د ذاتي خفګان په وجه احمدشاه ته د لاهور د حملے دعوت ورکړے وو. خو چه د احمدشاه د پیش قدمۍ نه خبر شو نو د مغل دربار په منتونو او خواستونو د

هغوی سره رضا شو - او د احمد شاه مقابلې ته ئے تیاری شروع کړه - احمد شاه چه لاهور ته اورسید نو په شالا مار باغ کښې ډیره شو - او حیات الله خان ته ئے د جنګ نهٔ کولو او په رضا صلاح د لاهور حواله کولو پیغام اولیږلو - ولې حیات الله خان ج د جنګ نه نهٔ صبریدو - اخر ( په ۱۱ جنوری ۱۷۴۸ء ) جنګ اوشو - حیات الله خان دهلی ته او تښتیدو - او لاهور د احمد شاه په قبضه کښې راغے - دلته هغهٔ جمعه خان (مومند ګی) خپل ګورنر مقرر کړو - او د دے ځائے نه د دهلی په تګل روان شو -

مغل بادشاه محمد شاه چه د دهلی په لور د احمد شاه د پیش قدمئ نه خبر شونو د هغهٔ مقابلې ته ئے د خپل ځوی احمد شاه په ماتحتئ کښې یو لوئے فوځ رااولیږلو - اود احمد شاه (پښتون) د ایسارولو په عزض د ستلج سیند د ګودرونو په سمبالښت کښې ګکیا شو - ولې احمد شاه دوئ له تیر ورکړو - او چه دوئ بیا په ځان پوهیدل - نو هغه بیا سرهند ته رسیدلے وو - او په قلاځ ئے قبضه کړی وه - اخر د مغلو او پښتنو ترمینځه د سرهند نه لس میله لرے قطب په قبله د مانک پور په مقام جنګ اوشو - په دے جنګ کښې د پښتنو فوځ دولس زره وو - او مغل فوځ د شپیتو زرو نه هم زیات وو - لس ورځ د دواړو فوځونو ترمینځه واړهٔ واړهٔ جنګونه جاری وو - په لسمه ورځ مغل فوځ د یو عام حملے نیت اوکړو - او سخت جنګ اوشو - د حملے په ابتدا کښې وزیر قمرالدین چه د مغل شهزاده احمد شاه اتالیق او د دے فوځ نګران وو - په ګولئ اولګید او مړ شو - ولے د هغهٔ ځوئے میر معین الملک (میرمنو) مغل فوځ په ډیرے زړورتیا او استقامت او جنګولو - د بده مرغه د پښتنو په میګزین اور اولګیده او دے خبرے احمد شاه درانے په وروستو کیدو مجبور کړو - دا د مغل فوځ وروستئ فتحه وه چه د حالاتو د موافقت په وجه د هغوی نصیب شوه - خو مغل فوځ د پښتنو د هیبت نه داسے بوګنیدلے وو چه د خپل کثرت او فتح باوجود ئے د پښتنو تعاقب ته غاړه کښیښنوه - او دهلی ته واپس شو - احمد شاه درانی په واپسئ کښې په ډیره جاتو، شکارپور، او ملتان کښې خپل حاکمان مقرر کړل - او د ژمی په موسم کښې قندهار ته اورسید -

د کال ۱۷۴۹ء په پسرلی کښې احمد شاه د هرات د تسخیر اراده اوکړه - ولے دغه وخت هغه د خپل قتل د یو سازش نه خبر شو - د دے سازش مشر هغه نور محمد خان علیزے وو چه د نادر شاه په وخت کښې د پښتنو د خاص فوځ سپه سالار وو - او د نادر شاه

د مړګ نه پس د دے لوئ عهدے نه لرے کړے شوے وو - دے سری د احمد شاه سره ډیره کینه ساتله - او په دے کوشش کښے لګیا وو چه په څه چل احمد شاه د میڅ نه لرے کړی - او د بادشاهئ اختیارات په خپل لاس کښے واخلی - په دے مصلحت کښے هغهٔ د ځان سره نور سرداران هم ملګری کړی وو - دا ټول هغه سرداران وو چه د احمد شاه سره ئے بغض لرلو - خو نور محمد خان او د هغهٔ ملګری د قدرت او حکومت د ټولو وسیلو نه غافله وو - د دے سازش راز ښکاره شو - دا جرم چونکه یو لوئ جرم وو - په دے وجه نور محمد خان او د هغهٔ ملګرو ته د قتل سزا ورکړے شوه - او دا ورومبئ پښتانهٔ وو چه د احمد شاه په دور حکومت کښے اووژلے شول -

د دے نه پس احمد شاه پنځویشت زره فوځ واخست او په هرات ئے چغه اوویستله د څوارلسو ورځو د محاصرے نه پس هرات فتح شو - او د پښتنو په سلطنت کښے شامل شو - احمد شاه بیا د مشهد د تسخیر په تکل روان شو - په مشهد کښے د نادرشاه نمسے شاه رخ مرزا حکمران وو - چه په دغه ورځو کښے د سیستان د یو سردار میر عالم د لاسه هم په دے ښار کښے قید وو - د تربت شیخ جام په مقام احمد شاه او میر عالم ترمینځه مقابله اوشوه - چه احمد شاه په کښے بریالے شو - په مشهد د احمد شاه قبضه شوه - د قبضے نه پس احمد شاه شاه رخ مرزا د قید نه رااوښکلو او د هغهٔ ئے ډیره ننا ځنه اوکړه - او د مشهد حکومت ئے هم هغهٔ ته حواله کړو - او د نیشا پور په تسخیر روان شو - د دے ښار خلقو د ښار دروازے بندے کړے - ښار محاصره شو - ولے دا محاصره ډیره اوږده شوه - او اخر احمد شاه په واپسئ مجبور شو - په لاره د موسم د ناکړدو د لاسه د هغهٔ فوځ ته لوئ زیان ورپیښ شو -

- او ډیر نه زیات سپاهیان ئے تباه شول -

دکال ۱۷۵۱ء په اخره میاشت کښے احمد شاه د خپل فوځ سره په اباسیند راپورے وتو - او په پنجاب ئے د حملے نیت ښکاره کړو - دغه وخت کښے د پنجاب ګورنر هغه میر معین الملک (میرمنو) وو چه یو کال اګاهو ئے د مانک پور په مقام د احمد شاه فوځونو ته شکست ورکړے وو - او د دے په بدل کښے د محمد شاه مغلیه د لوری نه د پنجاب ګورنر ټاکلے شوے وو - میرمنو چه د احمد شاه د حملے نه خبر شو نو د هغهٔ مقابلے ته راروان شو - ولے د طرفینو د خط وکتابت په نتیجه کښے د مغل حکومت د لوری نه د څوارلس لکو روپو خراج اداکولو لوظ اوشو - او احمد شاه د جنګ نه بغیر

قندهار ته لاړ - د دے نه پس احمد شاه نیشاپور هم فتح کړو - او د کال ۱۷۵۱ء تر اخره پورے هغهٔ د ایرانی خراسان یوه لویه حصه په خپل سلطنت کښے شامله کړه - هم په دغه ورځو کښے د هغهٔ امیرانو بلخ او بدخشان یعنی د موجوده افغانستان ټولے قطغن علاقے فتح کړے -

په کومو ورځو کښے چه احمد شاه د خراسان په معاملاتو کښے مصروف وو - "میرمنو" د پنجاب گورنر د هغهٔ د مصروفیاتو نه دا فائده واخسته چه د مقرر باج و خراج د رقم په ادا کولو کښے ئے ټیل جل شروع کړو - په دے وجه د کال ۱۷۵۱ء په اخر کښے احمد شاه بیا په پنجاب د حملے اراده اوکړه - ولے اول ئے د خپل یو قاصد په ذریعه د میرمنو نه د خراج د ادا کولو مطالبه اوکړه - خو خبره روغه نهٔ شوه - "میرمنو" د احمد شاه مقابلے ته د لاهور نه راروان شو - او د لاهور نه پنځویشت میله پورته د راوی سیند په غاړه دیره شو - ولے احمد شاه د "میرمنو" د مقابلے نه ځان بچ کړو - او د هغهٔ د فوځ په شاتے ځان لاهور ته اورسولو - او په شالامار باغ کښے ئے دیره اونیوله - میرمنو چه د دے نه خبر شو - نو هغه هم پسته لاړ - او په ښار کښے قلا بند شو - احمد شاه ښار محاصره کړو - دا محاصره څلور میاشتے اوږده شوه - طرفین د خرڅ خوراک د لاسه تنګ شول - اخر میرمنو د خپل فوځ سره رااووت - او په پښتنو ئے حمله اوکړه - خو په دے جنګ کښے میرمنو د احمد شاه په لاس کښے بندیوان شو - او د احمد شاه په وړاندے پیش کړے شو -

احمد شاه د میرمنو نه تپوس اوکړو چه که زهٔ ستا په لاس کښے گیر شوے وے نو تا به زما سره کوم سلوک کړے وو - میرمنو ورله اووے چه نیغ به مے د دهلی ته د خپل بادشاه په خدمت کښے لیږلے وے - بیا احمد شاه ورنه پوښتنه اوکړه چه اوس زما نه د کوم سلوک طمع لرے؟ میرمنو سمدستی اووئیل چه که ته قصاب ئے نو اوے وژنه - که تاجر ئے نو لوئے رقم رانه واخله - او پریږدے ده - او که چرے ته بادشاه ئے نو معاف ئے کړه - احمد شاه د میرمنو په دے جواب ډیر خوشحال شو - او د هغهٔ د زړورتیا تدبر او اخلاقی بلندئ نه ډیر متاثر شو - نو د هغهٔ سره ئے ډیر ښهٔ سلوک اوکړو - او هغه ئے د خپل لوری نه د پنجاب گورنر کړو دغه شان د پنجاب او ملتان صوبے د احمد شاه په حکومت کښے شاملے شوے - د دهلی شهنشاه هم دا خبره منظوره کړه - په دغه ورځو کښے د کشمیر صوبه هم د احمد شاه په سلطنت کښے شامله شوه - او د احمد شاه سلطنت د هغهٔ د زړهٔ د خواهش مطابق وسعت اوموند - د دے نه پس هغه قندهار ته راغے - او د کال ۱۷۵۶ء

پورے د خپل حکومت په اندرونی تنظیم او مضبوطیا کښے لگیا وو۔ ولے په دغه ورځو کښے د پنجاب واقعاتو هغه یو ځل بیا پنجاب ته په راتلو مجبور کړو۔

میرمنو چه د احمد شاه د لاسه د پنجاب گورنر شوے وو۔ د کال ۱۷۵۳ء په آخر کښے مړ شو۔ او احمد شاه د خپلو اصولو مطابق د هغهٔ ماشوم ځوئے د دے صوبے گورنر او تاکلو۔ او د هغهٔ مور ئے د هغهٔ سرپرست مقرر کړه۔ ولے په دے خبره د پنجاب نورو امیرانو خفگان ظاهر کړو۔ او د اړی کړی او بدنظمئ اغاز ئے اوکړو۔ د دے بدنظمئ په وجه د دهلی د بادشاه خوا هم او غزید له۔ او د پنجاب د قبضے په غرض ئے یو لوئے فوځ رااولیږلو۔ په لاهورئے قبضه اوکړه۔ او یو چالاک فسادی بنیادم ادینه بیگ ئے د دے صوبے گورنر کړو۔ دا ادینه بیگ د میرمنو یو پخوانے نوکر او ډیر سازشی وو۔ او په دے فسادونو کښے هم د دهٔ لاس وو۔ ادینه بیگ د میرمنو کونډه ښځه قید کړه۔ او د هلی ته ئے اولیږله۔

احمد شاه چه د دے بے لوظئ نه خبر شو نو سمدستی په لاهور رااوخت۔ ادینه بیگ هیڅ مقابله او نهٔ کړه۔ او په تخته د هلی ته اوتښتید و۔ احمد شاه هم په دهٔ پسے دهلی ته روان شو۔ مغل شهنشاه په دے ورځو کښے د خپلو امیرانو په لاس کښے یو گوډاګے وو۔ عام اولس د بدعمله امیرانو د لاسه تر پوزے راغلی وو۔ د حکومت د اقتدار ماڼئ نړیدلی وه۔ او هسے تش په نوم پاتے وه۔ چه احمد شاه د دهلی نه د شلو میلو په فاصله اورسید نو دغه وخت د دهلی دربار امیرانو د روغے په نیت د میرمنو هغه کونډه احمد شاه ته د جرګے په ډول رااولیږله۔ ولے احمد شاه د دے بے عزتئ اوکړاؤ تاوان او غوښتو۔ او چه دا ورنهٔ کړے شو۔ نو هغه ور وړاندے شو۔ او په جنوری ۱۷۵۷ء کښے ئے په دهلی قبضه اوکړه۔ په دے موقع د احمد شاه سپاهیانو د هغهٔ د مرضئ نه قطعی خلاف د دهلی د خلقو کورونه اولوټل۔ او د دے سپاهیانو د لاسه د دهلی اولس ته هم هغه تکلیف ورپیښ شو کوم چه اتلس کاله اګاهو دوئ ته د نادرشاه د فوځ نه رسیدلے وو۔

احمد شاه په دهلی کښے اتال شو۔ او د دهٔ یو سردار جهان خان د بالم ګړه قلا فتح کړه۔ او د متهرے بنارئے اولوټلو۔ بیا د اګرے په لور روان شو۔ ولے په اګره کښے جاټ قوم د دهٔ سخته مقابله اوکړه۔ او جهان خان په دوئ بری او نهٔ موندو۔ د دهلی د استوګنے په دوران کښے احمد شاه مغل[۱] خپله لور د احمد شاه درانی ځوی شهزاده تیمور ته په نکاح ورکړه۔ او د خپلے

---

[۱] احمد شاه د محمد شاه مغل ځوئے وو چه په کال ۱۷۴۸ء کښے بادشاه شوے وو۔

لور په داج کښې د پنجاب او سنده صوبې هم ورکړے۔ او دغه شان په دے صوبو د احمد شاه قبضه مغل حکومت په خپله اومنله۔ د دے نه پس احمد شاه قندهار ته روان شو۔ د تلو نه مخکښې ئے د میرمنو یو ورور د شهنشاه دهلی وزیر مقرر کړو۔ او د سنده او پنجاب حکومت ئے خپل ځوی شهزاده تیمور ته ورکړو۔ او سردار جهان خان ئے د هغهٔ وزیر کړو۔

د اورنګ زیب عالمګیر د وفات نه پس مغل حکومت په ډیره تندئ د زوال په لور روان وو۔ په دے زمانه کښې فوځ په سیاسی معاملاتو کښې تر ډیره حده دخل انداز شوے وو۔ او د اورنګ زیب د جانشینانو د قسمت واګے د فوځی امیرانو په لاس کښې وے۔ دا ایرانی د خپلو بدعملیو او بد اخلاقیو له کبله په خپل مینځ کښې د یو بل وینو ته تږی ناست وو د فوځی ا، سرانو د دے خودغرضئ او بے اتفاقئ په نتیجه کښې دحکومت اقتدار ته ډیره لویه صدمه اورسیدله۔ ملک په وړو وړو خود مختاره ریاستونو کښې تقسیم شو۔ د مغل حکومت په مقابله کښې غیرمسلم طاقتونو سراووچتلو۔ او د هځوی په دماغ کښې د خپل قومی حکومت قاشولو خیالات رااولړزیدل۔ د نادرشاه حملے او بیا په هغه پسے سم د مغل حکومت د امیرانو د نالائقئ او بد عهدئ په نتیجه کښې د احمد شاه پرله پسے حملو د مغلیه حکومت تش هغه د نوم اقتدار ته هم لویه دیکه ورکړه۔ دغه وجه وه چه د احمد شاه د واپس کیدو سره سمدستی مرهټیانو په هندوستان کښې او سیکانو په پنجاب کښې اړے ګړے پیدا کړو۔

احمد شاه چه د هند نه رخصت شو نو سیکانو په پنجاب کښې په بد امنئ پیداکولو شروع اوکړه۔ د غرونو نه میدانونو ته راکوز شول۔ او د پښتنو د مقابلے د پاره ئے فوځی تیارئ شروع کړے۔ شهزاده تیمور د دوئ مقابله اوکړه۔ او د دوئ ټولے قلاګانے ئے ورانے کړے۔ خو د سیکانو فسادونه په دے خبره ختم نهٔ شول۔ ځکه چه دوئ به په میدان کښې تیښته اوکړه۔ نو غرونو ته به اوتښتیدل۔ او چه شاهی فوځونه به بیرته لاړل نو دوئ به بیا هلے ځلے شروع کړے۔ د سیکانو په لمسولو او فسادونو کښې د هغه ادینه بیګ لوئے لاس وو۔ کوم چه د احمد شاه د مقابلے نه د لاهور نه تښتیدلے وو۔

د سیکانو حملو اګرچه په ملک کښې بد نظمی پیدا کړی وه۔ ولے د دغه وخت کښې د دوئ طاقت لا دومره زیات نهٔ وو۔ چه د تیمور شاه د فوځونو مقابلے ته ئے مخ نیولے وے۔ ولے چه احمد شاه قندهار ته اورسید۔ نو لږے ورځے پس مرهټیانو په پنجاب حمله اوکړه۔

د مرهټیانو دا حمله د غازی الدین نوے یو امیر په مشوره شوی وه. چه خپل ځان ئے د دهلی د بادشاه شاه عالم په زور وزیراعظم کړے وو. او د مرهټیانو په مرسته د خپل اقتدار قائم ساتلو خواهشمند وو. کوم وخت چه احمد شاه په دهلی حمله کړی وه دغه وخت دا غازی الدین د احمد شاه د ویرے نه تښتیدلے او د مرهټیانو خواځے نیولی وه.

مرهټیانو په پنجاب قبضه اوکړه. ځکه چه په تیمور کښے د دوی د مقابلے توان نۀ وو. تیمور د خپل فوځ سره په اباسیند راپورے شو. او قندهار ته راغے. احمد شاه چه د مرهټیانو د دے ګستاخئ نه خبر شو نو هغۀ د دوی مقابلے ته ځان سمولو چه هغۀ ته یوه بله واقعه پیښه شوه. دا د نصیرخان چه د بلوچستان حکمران وو. د بغاوت واقعه وه.

د احمد شاه او نصیرخان ترمینځه تعلقات ډیر خوشګوار وو. دا سردار په هغه جرګه کښے هم شامل وو. کومه چه په اول ځل د بادشاه د انتخاب په غرض غونډه شوی وه. نصیرخان د احمد شاه د بادشاه کیدو سره پوره پوره اتفاق هم ظاهر کړے وو. او د دے نه علاوه د هندوستان په درے وارو حملو کښے هم د احمد شاه ملګرے او ښۀ وفا دار وو. ولے چه مرهټیانو په پنجاب حمله اوکړه نو دغه وخت نصیرخان هم د خپلے وفادارئ نه واوړیدو. او د خپلے خودمختارئ اعلان ئے اوکړو. او چه کوم وخت دا خبر احمد شاه ته اورسید نو هغه ئے هیڅ و منلو ته نۀ تیاریدو. دغه وجه وه چه د جنګ نه اول ئے هغۀ ته د صلح پیغام اولیږلو. دا پیغام د احمد شاه د لوئے وزیر شاه ولی خان په ذریعه استولے شوے وو. خو نصیرخان صلح غوره نۀ کړه. او د شاه ولی خان سره ئے جنګ خوښ کړو.

د دوارو فوځونو مقابله د مستونګ په مقام اوشوه. په دے مقابله کښے شاه ولی خان تیښته اوکړه. خو نصیرخان د هغۀ تعاقب اونۀ کړو. او په مستونګ کښے پاتے شو. د احمد شاه د پاره دا د ډیرے بدناموسئ او لوئے زیان خبره وه. نو هغه په خپله د نصیرخان مقابلے ته روان شو. او د هغۀ په کیمپ ئے حمله اوکړه. نصیرخان قلات ته په شا شو. او احمد شاه هم ورپسے وو. او ښارئے محاصره کړو. دا محاصره ډیره اوږده او د احمد شاه د زغم نه بهر شوه. دغه وخت احمد شاه هم په هغه شان ګرانه کښے ګیر وو څه رنګ چه نادر شاه د قندهار د محاصرے په دوران کښے ګیر شوے وو. د احمد شاه دا تلوسه وه چه دا خبره زر فیصله شوے او د مرهټیانو مقابلے ته اوزګار شوے. ولے بل طرف نه نصیر خان هم په خپل هود ټینګ وو. د محاصرے په اوږد والی او سختیو ئے څه کار نۀ لرلو. اخر فیصله داسے اوشوه چه نصیرخان د احمد خان بادشاهی په ځان اومنله. او دا ئے

وعده اوکړه - چه د بیروني دښمن په مقابله کښې به بادشاه د امداد دپاره یو خاص فوځ ورکوی - او د دے فوځ اخراجات به د بادشاه په ذمه وی - او د بلوڅو د دے فوځ نه به په کورنو جنګونو کښې کار نهٔ شی اخستے - د دے په بدل کښې به نصیرخان د شاهی خراج نه معاف وی - د معاهدے د مضبوطیا په غرض احمد شاه د نصیرخان وریره په نکاح کړه - او چه دا فیصله اوشوه نو احمد شاه قندهار ته لاړ - او هلته ئے ضروری کارونه سم کړل - او بیا د بولان په دره رااووت - او پیښور ته راغے - د قلات د محاصرے په دوران کښې احمد شاه څه لږ شان فوځ د ځل یو سردار نورالدین په ماتحتیٔ کښې د پنجاب په لور په دے غرض لیږلے وو - چه د دښمن مخه اووهی - خو دے فوځ د مرهټیانو دے شیره فوځ سره مقابله سودمنه نهٔ وه ګڼلی - او په وزیرآباد کښې اتال شوے وو.

احمد شاه په ډیرے تندئ په اټک پورے وتو - او د ځل فوځ سره یو ځائے شو - او بیا د شمالی پنجاب په علاقه کښے وړاندے لاړ - او د سهارنپور سره نزدو په جمنا پورے وتو - دلته د هغهٔ په خدمت کښې نواب نجیب الدوله چه د روهیلی (یوسف زو) پښتنو سردار وو - او حافظ الملک نواب رحمت خان چه په خټه بړیځ پښتون وو - حاضرشول - او احمدشاه د دوئ په ملګرتیا کښې د دهلی په لور کوچ اوکړو -

د احمد شاه د راتلو خبر چه د مرهټیانو ترغوږ شو نو د هغوی یو لوئے فوځ په جمنا راپورے وتو - او د دهلی سره نزدو د «بارلی» په مقام د مرهټیانو او پښتنو مقابله اوشوه. په دے جنګ کښې د مرهټیانو یو لوئے سردار «داتاجي پټیل» قتل شو - او نور فوځ د «جنکو» نوے یو سردار په ماتحتیٔ کښې تیښته اوکړه - د دے فوځ د کومک د پاره د مرهټیانو یو بل فوځ د «ملهار راؤ هلکر» په ماتحتیٔ کښې راغلو - ولے دا فوځ هم د پښتنو د لاسه تالا ترغا او په تیښته مجبور شو -

احمدشاه د دے نه پس د خپلو هندوستانی پښتنو مرستیالو نوابانو په ملګرتیا کښې دهلی ته لاړ - غازی الدین وزیرچه د احمد شاه د راتلو نه خبر شو نو مخه ډیرے ویرے واخست - او د سورج مل جاټ سره ئے په آګره کښې پناه واخسته - احمد شاه په دهلی قبضه اوکړه - او د علاقے انتظام ئے درست کړو - بیا ئے په دهلی کښې څه لږ شان فوځ پرے ښودو او د نور فوځ په مدد ئے د ګنګا او جمنا سیندونو ترمینځه توله علاقه فتحه کړه - او د دهلی نه درے اویا میله لرے د انوپ ښار پورے اورسید - او د برسات د تیرولو په غرض د خپلو فوځونو سره هم دلته دیره شو - په دے مقام د فرخ آباد نواب احمدخان

بنګښ هم د خپل شپږ زره فوځ سره د هغهٔ په خدمت کښې حاضر شو- او داوده نواب شجاع الدوله هم د لس زره فوځ سره رااورسید او د شاه په کومک اودرید- په دے ډول د ۱۷۶۱ء تراخره پورے د شمالی هند ټول لوئے لوئے مسلمانان حکمرانان د احمد شاه په مرسته د هغهٔ سره اوږه په اوږه اودریدل- او ټولو په شریکه د احمد شاه په قیادت کښې د هندوستان زمکه د مرهټیانو د وجود نه د پاکولو اراده اوکړه- او دائے کلکه وعده اوکړه چه د دے وطن استوګن د دے لوټ مارو د تاختونو او لوټونو نه د هیشه دپاره خلاصول پکار دی-

د مرهټیانو د دے ذلیل شکستونو نه چه کوم وخت د مرهټیانو "پیشوا" په پونا کښې خبر شو نو هغه د ډیر قهر نه لکه د مار تاؤ راتاؤ شو- او قسم ئے اوخوړ چه ترڅو د احمد شاه نه د دے شکستونو بدل وا نهٔ خلم او د هند نه د بابر ذیله ورکه نهٔ کړم او د دهلی تخت خپل لاس ته را نهٔ ولم- تر هغے به ارام او نهٔ کړم- په دے غرض هغهٔ عین د برسات په موسم کښې یو عظیم فوځ د خپل ځوئ "بسواس راؤ" او د خپل تربور سداشیوراؤ بهاؤ په ماتحتئ کښې د دهلی په لور اولیږلو- د دے فوځ سره د ابراهیم خان کردی په ماتحتئ کښې لویه توپ خانه هم وه- او چه څه وخت دا فوځ آګرے ته اورسید نو سورج مل جاټ هم د خپل دیرش زره فوځ سره د دوی ملګرے شو- او په لاره کښې ډیر راجپوت هم د دوی سره شامل شول- دا فوځ چه متهرے ته رااورسید نو غازی الدین هم ورسره شو او بیا په ډیر کروفر او شان و شوکت کښې د "جنکو" او ملهار راو د فوځونو سره یوځائے شو- په دے ورځو کښې احمد شاه د جمنا په بلے غاړے پروت وو- د برسات په وجه پدسیند پورې وتل ګران وو- ځکه دغه وخت مرهټیانو په دهلی حمله اوکړه- په دهلی کښې د احمد شاه د لوری نه یعقوب علی خان مهمندزے د څه لږ شان فوځ سره موجود وو- د هغهٔ دپاره د مرهټیانو د دے پیچ میړو مقابله ګرانه وه- نو په ښار د مرهټیانو قبضه راغله- د دهلی ښار دوی بیا ښهٔ لوټ کړو- د دهلی نه پس ئے په "کنجپوره" هم قبضه اوکړه- دلته هم د پښتنو څه لږ شان فوځ د نواب نجابت خان په ماتحتئ کښې موجود وو- چه په ډیرے بهادرئ ئے د مرهټیانو مقابله اوکړه- او ټول اووژلے شو-

د دے نه پس د مرهټیانو سردار "بهاو" دا اراده اوکړه چه د دهلی په تخت د پیشوا ځوئے "بسواس راو" کښینوی- خو دا اراده ئے په دے غرض ملتوی کړه چه اول د احمد شاه سره خبره رښول پکار دی نو په دے وجه ئے د "شاه عالم عالی ګوهر" مغل

بادشاه څوئے شهزاده „ جوان بخت „ د نوم د پاره د دهلی په تخت کښینولو او نواب شجاع الدوله والیٔ اوده ئے چه د احمد شاه په ملګرو کښے او د هغهٔ سره موجود وو ـ د هغهٔ په غیرحاضرئ کښے په دے غرض د جوان بخت وزیر مقرر کړو چه احمد شاه په شجاع الدوله بدګمانه نشی ـ

د دهلی او کنجپورے د واقعاتو نه چه احمد شاه خبرشو نو هغهٔ د مرهټیانو سره د یو فیصله کن جنګ په غرض را روان شو ـ خو د هغهٔ او مرهټیانو ترمینځه د جمنا سیند وو ـ چه د برسات په وجه په تُوپونو بهیدلو ـ ولے د خوش قسمتیٔ نه په دے موقع ناساپه سیند پرے وتو ـ او احمد شاه د دے نه فائده واخسته ـ په اس سورشو او د خپلے محافظ دستے سره په ډک سیند ورګډ شو ـ نور فوځ هم د دوئ تقلید اوکړو ـ مرهټیانو په دے حال کښے په دوئ ګوله باری شروع کړه ـ ولے د احمد شاه د ارادے په وړاندے د مرهټیانو ګوله باری بے کاره شوه ـ او د پښتنو فوځ په ډک سیند راپوُرے وتو ـ او سمدستی ئے په مرهټیانو داسے حمله اوکړه چه هغوی ایله د پانی پت په میدان کښے ساه واخستله ـ او خپل کیمپ نے ئے د حفاظت په غرض چارچاپیره خندقونه او کنستل ـ احمد شاه هم په دوئ پسے پانی پت ته راغے ـ او د دوئ نه یو څو میله لرے په یو موزون مقام ئے خپل کیمپ قائم کړو ـ

د احمد شاه او د هغهٔ د هندوستانی ملګرو فوځئ طاقت د مرهټیانو په مقابله کښے نسبتًا ډیرکم وو ـ نو هغهٔ د مرهټیانو سره د سمدستی پنجه اچول په جنګی نقطه نګاه سره موزون او نهٔ ګڼل ـ او دا کوشش ئے شروع کړو چه دا مزی حملے نه اول مرهټیانٔ د خوراک د لاسه تنګ کړی ـ او ډیر په کښے د ولوږو نه مړهٔ کړی ـ په دے غرض هغهٔ د مرهټیانو د رسد رسانئ په لاروکښے خپلے څوکیٔ مقررکړے ـ او د هغوی د رسد بندولو په مقصد کښے تر ډیره حده کامیاب شو ـ اګرچه مرهټیانو هم د احمد شاه د رسد په بندیز کښے څه کمے نهٔ کولو لیکن په دے باب کښے د مرهټیانو په نسبت د احمد شاه کوششونه ډیر کامیاب وو ـ او هغهٔ دا غوره اوګڼله چه ترممکن حده لوئے جنګ ته ټال ورکول بکار دی ـ دا حالت تر درے میاشتو جاری وو ـ په دے موده کښے به هره ورځ د مرهټیانو او پښتنو ترمینځ واړهٔ واړهٔ جنګونه کیدل ـ خو فیصله کن جنګ یو هم نهٔ وو شوے ـ دے حالاتو یواځے مرهټیان نهٔ وو ستومانه کړی بلکه د احمد شاه هندوستانی ملګری هم په دے تنګ شوی وو ـ او هغوی به د احمد شاه نه د یو فیصله کن جنګ تقاضا کوله.

ولے احمد شاه به هر وخت هغوی ته ۱/ دا وټيل چه دا جنگی معاملات دی او د جنګ د اصولو مطابق به فيصله کيږی۔ تاسو په دے کارکښے غرض مه لرئ۔ د جنګ په حقله د احمد شاه دا پاليسي ډيره کامیابه وه ۔ بنا غلے قاضی عطاؤ الله خان مرحوم د يو انګريز مؤرخ ايلفنسټن په حواله وائی چه " اګرچه د درانو فوځ هم د غرخ خوراک د لاسه ډير تنګ وو۔ ولے د احمد شاه د صبر، بيدارئ او تحمل په وجه به ډير مشکلات حل کيدل۔ او چونکه د ټول لښکر په هغهٔ باندے اعتماد وو۔ او هغهٔ به د خپلو هندوستانی ملګرو سره د ډيرے نرمئ او خوش خلقئ سلوک کولو۔ په دے وجه د هغهٔ په کيمپ کښے هيڅ قسم بے ارامی او بد دلی نهٔ پيدا کيده۔ مګر د دهٔ په مقابله کښے د مرهټيانو فوځ وو چه د جنګ د مصيبتونو نه بے حوصلے شوے وو۔ ځکه چه هغوی به د دے ټولو مصيبتونو او کړاؤنو الزامونه په خپلو کماندارانو لګول۔

د مرهټيانو لښکر يواځے د خوراک د لاسه تنګ نهٔ وو بلکه د دوئ په کيمپ کښے د غلاظت او ګندګئ هم ډيره پريوانی وه۔ او د دے د لاسه هم دوئ ډير تنګ شوی وو۔ دغه وجه وه چه د مرهټيانو سردار بهاو څو ځله د نواب شجاع الدوله په ذريعه د صلح کوشش اوکړو۔ ولے هرځل به دا کوشش د نجيب الدوله په وجه ناکامياب شو۔ هغهٔ به دا وټيل چه د شاه درانی د تلو نه پس به مرهټيان په قبرونو کښے هم زموږ هډوکی پرے نږدی۔ او د دے نه بغير بله څه چاره نشته۔ چه يا مرهټيان زموږ د لاسه تباه شی او يا په دے کوشش کښے موږ په خپله تباه شو۔ د نواب نجيب الدوله داخيال بلکل درست وو۔ که چرے په دے موقع مرهټيانو سره صلحه شوے وے نو په لږه موده کښے په ټول هندوستان باندے د هغوی قبضه څه لرے نهٔ وه۔

اخرچه مرهټيان د ولوږو او پريوانه ګندګئ او غلاظت د بدبوئ د لاسه تر پوزے راغلل نو په ۶ر جنوری ۱۷۶۱ء ټولو سردارانو د فيصله کن حملے اراده اوکړه۔ دغه وخت د مرهټه فوځ سالار اعلیٰ بهاؤ په نيمه شپه کښے په خپل لاس او په خپل قلم په يو پرزه د شجاع الدوله په نوم دا پيغام راواليږلو۔ " اوس پياله ډکه شوی ده او يو څاڅکے په کښے نور نهٔ ځائيږی۔ که درنه څه کيدے شی نو دغه وخت دے؟" ولے او به اوس د ورځه اوريدلے وے۔ د دے خط سره سم شجاع الدوله ته د خپلو مخبرانو د لوری نه د مرهټه فوځ د پيشقدمئ خبر راورسيد۔ شجاع الدوله سمدستی د احمد شاه خيمے ته روان شو۔ دغه وخت بادشاه اوده وو۔ او د هغهٔ اس زين کړے تيار د خيمے نه بهرولاړ

وو. شجاع الدوله بادشاه ته د مرهټيانو د پيش قدمۍ اطلاع ورکړه. بادشاه سمدستي په اس سور شو او د شجاع الدوله سره د کيمپ نه بهر راووتلو. دغه وخت د يو نوکر په لاس کښې چيلم وو. بادشاه به چيلم څښلو او د شجاع الدوله سره به ئے خبرے کولے. بادشاه په خپلو سترګو هم د دشمن فوځونه اوليدل. بيا ئے خپل لښکر ته د تياريدو حکم ورکړو. دغه وخت وروستے پهر وو. په دے وخت کښے دواړو لښکرو د جنګ د پاره ځانونه تيار کړل.

په ۷ ر جنوري سن ۱۷۶۱ سحر وختي د مرهټيانو سالار بهاؤ د خپل لښکر ترتيب مکمل کړو. په خپله په هاتي سور شو. او په ډيره دبدبه کښے ئے خپل فوځ ته د حملے حکم ور ورکړو. او په اوله حمله کښے د مرهټيانو فوځ د پښتنو په ښې اړخ ورننوتو. او ډير وړاندے شول. او نږدو وه چه ګټه ئے کړے وے. ولے دغه وخت احمد شاه خپل خاص فوځ د دوئ مدد ته اوليږلو. دا د دے جنګ ډير نازک وخت وو. مرهټيان په ډيرے بهادرۍ جنګيدل او که لږ شان ټينګ شوے وے نو ګټه به ئے کړې وه ځکه چه دوئ د پښتنو ښے اړخ راډانده کړے وو. او کس اړخ ئے د دشمن سره په تول برابر وو. په دغه وخت کښے د مرهټيانو سالار اعلیٰ د پيشوا ځوئے "وسواس راؤ" ژوبل شو او په دے خبره د مرهټيانو زړونه پرے وتل. او د "کرنل ميلسن" په الفاظو کښے "هر کله چه دوئ د يو بادشاهۍ د ګټلو په خيال جنګيدل نو دوئ ته پکار وو چه په دے جنګ کښے ئے هيڅ کوتاهي نۀ وے کړے. ليکن د خپل سردار په مرګ د هغوی زړونه داسے مات شول چه په يو داسے وخت کښے ئے د هندوستان بادشاهي پريښوه چه بلکل د هغوی لاس ته راغلې وه."

د احمد شاه دے خاص فوځ د پښتنو د ښي اړخ او د مينځ فوځ ته ډير قيمتي امداد اورسولو. د دوئ په مدد د هغوی زړونه غټ شول. او د زمرو په شان په مرهټيانو ورپرے وتل. دا حمله ډيره د لړے برے وه. د دے حملے په اول کښے مرهټه فوځ د پيش قدمۍ نه ايسار کړو. او بيا ئے په تيښته مجبور کړو. د مرهټيانو تول لوئے لوئے سرداران اووژلے شول. د دوئ په مرګ د مرهټه عام فوځ داسے وارخطا شو چه تيښته ئے او کړه. او پښتنو په دوئ پسے بړے راښکلے او تر د هلي ئے اوزغلول.

د دواړو توريالو فرقو د دے عظيم الشانه جنګ د مرهټيانو د طاقت د هغوی د عروج غرور او تکبر په داسے حسرت ناکه طريقه خاتمه اوکړه. چه هغوی تر ډيرے مودے بيا د سراوچتولو قابل پاتے نۀ شو. د هغوی "د فولادي ارادے خاوند تهولواکے پيشوا" د

دے شکست او ناکامۍ زړهٔ لړزونکے واقع په زړهٔ داسے ژوبل کړو چه تخت و تاج ئے پرېښود. او د مایوسۍ په سیند کښے ډوب د فکرونو په تال شپږ میاشتے او ژوندے و. او بیا د ارمانونو نه ډک زړهٔ سره د دنیا نه رخصت شو. د زړورتیا او بهادرۍ کومه بے مثاله نمونه چه مرهټیانو په دے جنګ کښے پیش کړه. هغه د دے نه مخکښے چرے هم دوئ نهٔ وه پیش کړے. ولے کوم ذلیله شکست تباهي او بربادي چه د پښتنو د لاسه د دوئ په نصیب شوه. هغه هم په خپل نوعیت کښے بے مثاله وو. په ټول هندوستان باندے د چا د شرکت نه بغیر د حکمرانۍ خوب چه د ډیرے مودے نه دوئ لیدلو هغه د سترګو په رپ کښے یو پریشان خوب ثابت شو. او د پانی پت پنځوس مربع میله پلن میدان د دوئ په بے شماره مړو پټ شو. په ټول هندوستان کښے د دے جنګ شهرت خور شو. په ټول مرهټه قام کښے به داسے یو کور هم نهٔ وو. چه په هغے کښے به چا د خپل پلار، ورور یا خاوند ویر نهٔ وی کړے. په زرګونو مرهټه تکیلی سپاهیان به تر مودو مودو پورے بربنډ لغړ او نهر نهور ګرځیدل. او په خیرونو او خواستونو به ئے وخت تیرولو. په بل لور د پښتنو په لاس ډیر مال و اسباب او ساز و سامان راغے. د جواهراتو او قیمتي ساز و سامان او توپ خانے نه علاوه دوه لکه غوایان، په زرګونو اوښان، پنځه سوه هاتیان او پنځوس زره اسونه د مرهټیانو نه پښتنو اونیول. د هندوستان په تاریخ کښے د مها بهارت د جنګ نه پس د پانی پت دا جنګ د ټولو نه لوئے جنګ ګڼلے شی. په دے جنګ کښے د پښتنو فوځ په یو شلویښت زره سورو او اته دیرش زره پیاده سپاهیانو مشتمل وو. د هندوستان روهیل (یوسف زی) او بنګښ پښتانهٔ ټول د احمدشاه په مرسته جنګیدلی وو. د مرهټیانو فوځي طاقت په یو نیم لک پیاده سپاهیانو او پنځوس زره سورو مشتمل وو. او ټول مرهټیان واړهٔ زاګه او نزښځے پنځه لکه حساب شوی وو.

د پانی پت دا جنګ د خپل اهمیت له مخه ډیر د فیصلے جنګ وو. په دے جنګ کښے که مرهټیان کامیاب شوے وے نو په ټول هندوستان باندے د هغوی د حکومت په قائمیدو کښے بل هیڅ بندیز نهٔ وو. او د انګریزانو د پاره به چه په دغه ورځو کښے ئے په بنګال او مدراس کښے نو ابادۍ قائمے کړی وے. دا نهٔ وه ممکنه شوی چه د دے لوټ مارو د لاسه بچ پاتے شوے وے. ولے ډیره موده پس چه مرهټیان بیا په جزوی طور د خپل اقتدار په حاصلولو کښے کامیاب شول. نو دغه وخت انګریزان دومره مضبوط شوی وو چه نهٔ صرف د دوئ دیکه ئے زغملے شوه. بلکه هر دشمن ته ئے دیکه هم ورکولے

شوه- په دے بنا داوئیل به بے ځایه نهٔ وی چه په هند کښے د احمدشاه ابدالی دے عظیم فتح د انګریزانو حکومت ته لاره صفا کړه - او د احمدشاه د یوے لوئے سیاسی غلطئ ټوله فائده انګرایزانوته اووتله -

د فتح نه پس احمد شاه د دهلی تخت بیا دوباره مغل بادشاه ته اوسپارلو - او نجیب الدوله ئے د هغهٔ وزیراعظم مقرر کړو - ولے دا د احمد شاه یوه لویه سیاسی غلطی وه- په دے زمانه کښے مغل حکومت هسے په نوم پاتے وو- په دے حکومت کښے د هیڅ مقابلے توان نهٔ وو - د حکومت د کمزورئ او بد نظمئ په وجه د هرے صوبے حاکم ځان له بادشاه وو- دا حاکمان به په خپل مینځ کښے یو بل ته ګوا خیدل - او جنګیدل - په دا سے حالاتوکښے چه د هند د اوږ دے استوګنے او عیش و عشرت په وجه د مغلو هغه ځوانئ وینه زړه اوسړه شوی وه- دا سے کمزوری او عیاش او بے بنیے خلقو ته د هندوستان د حکومت نظام ورسپارل د احمد شاه یوه لویه سیاسی غلطی وه- هغهٔ ته پکار وو چه هندوستان ئے په خپل سلطنت کښے شامل کړے وے- او د بابر په شان په خپله په دهلی کښے پاتے شوے وے- او د قندهار او افغانستان صوبے ئے خپلو اعتمادی امیرانو او سردارانو ته ورکړے وے - دا خبره به یوائے د احمد شاه او پښتنو د پاره ښه نهٔ وه بلکه د هندوستان د ټولو قامونو د پاره به ښه وے - د احمد شاه نه اګاهو هم په هند باندے پښتنو سلطنت کړے وو - دا ځل به هم د مغلو نه دا سلطنت بیا پښتنو ته منتقل شوے وو- او دا سے خوځله وړاندے هم شوی وو - ولے احمد شاه دا سے او نهٔ کړل - هغه د دهلی د تخت نه د خپلے پښتنوځواکانې بوټی غوره ګڼل - او چه دا غرونه او کانې بوټی ورله وریاد شول نو هغهٔ د دهلی تاج و تخت او د هند عظیم الشان سلطنت هیر کړو - او د پښتونخواکانو بوټو ته بیا وررواں شو- د سرهند، پورے علاقه ئے چه داد وړاندے نه هغهٔ په خپل سلطنت کښے شامله کړی وه - د خپل سلطنت سره اوګنړله- او بیا د کال ۱۷۶۱ء په سپرلی کښے قندهار ته لاړ- په سرهند کښے هغهٔ زین خان مهمند او په لاهور کښے بلند خان خپل حاکمان مقرر کړل -

پانی پت خود مرهټیانو طاقت تر ډیرے مودے ختم کړو - ولے د سیکانو حالت د دوئ نه جدا وو - سیکان به ډیرے هم په میدانی علاقه کښے جنګ ته نهٔ اودریدل - او غرونو ته به تښتیدل - ولے چه شاهی فوځونه به بیرته لاړل نو دوئ به بیا د غرونو نه راښکته شول - او لوټ مار او بد نظمی به ئے شروع کړه - چه احمد شاه د هند نه قندهار

ته لاړ نو سیکانو بیا په پنجاب کښې ناتار جوړ کړو۔ او احمد شاه د دوئ د تابیا په غرض بیا په کال سنه ۱۷۶۲ع کښې پنجاب ته په راتلو مجبور شو۔ دا د احمد شاه د هغه سیاسي غلطئ نتیجه وه کومه چه هغهٔ د پانی پت د جنګ نه پس د دهلی سلطنت مغلو ته بیا په دوباره ور سپارلو کښې کړی وه۔ په دغه موقعه که کم از کم هغهٔ د خپل سلطنت صدر مقام لاهور مقرر کړے وے نو هغهٔ به د دے ځائے نه د مغل افغانی صوبو حفاظت او نګرانی هم کولے شوه۔ او په پنجاب کښې هم سیکانو دومره عروج او طاقت نهٔ وو حاصل کړے چه وروستو په خپله د احمد شاه د پاره د لوئے تکلیف باعث او د هغهٔ د جانشینو د پاره ئے د ناقابلِ تسخیر طاقت حیثیت اوموندلو۔

غرض په کال سنه ۱۷۶۳ع کښې احمد شاه د سیکانو د سرکوبئ په غرض پنجاب ته راغے۔ دغه وخت سیکانو د امرتسر سره نزدو "جنډیاله" محاصره کړی وه۔ ولے چه سیکان د احمد شاه په راتلو خبر شول نو د جنګ نه بغیر او تښتیدل۔ احمد شاه د دوئ په تعاقب کښې لاړ او د لدهیانے سره ئے راګیر کړل۔ او دا سے ئے اوټکول چه پنځویشت زره ئے مړهٔ کړل۔ او په خپل خیال کښې ئے د سیکانو طاقت ختم کړو۔ په سیکانو کښې دا واقعه د "کلوګهاراه" یعنی قتل عظیم په نامه مشهوره شوه۔ د دے نه پس احمد شاه د سیکانو د بیخ کنئ او د علاقے د انتظام په غرض په پنجاب کښې پاتے شو۔ او خپل سرداران ئے د سیکانو په تعاقب کښې اولیږل۔ دا پیره سیکان ډیر بد بد اووهلے شول او د ځه وخت د پاره د هغوی د مغزو نه د پنجاب د بادشاهئ خیال اووتلو۔

احمد شاه لا په سرهند کښې وو چه هغهٔ په قندهار کښې د بغاوت نه خبر شو۔ په دے وجه هغه په ډیرے تلوارئ قندهار ته روان شو۔ او په ډیر کړاؤ قندهار ته اورسید۔ ولے د رسیدو سره ئے ټولے لانجې او کشالے زر تر زره اوارے کړے۔ په کال سنه ۱۷۶۴ع کښې هغهٔ د هرات په خوا وشا کښې د ایماکو بغاوت سوړ کړو۔ ولے سیکانو د احمد شاه د تلو نه پس بیا سر اوچت کړو۔ څلویښت زره فوځ ئے جمع کړو۔ او په سرهند ئے حمله اوکړه په جنګ کښې د سرهند حاکم زین خان مهمند اووژلے شو۔ دا ځل سیکانو د سرهند، قصور، مامیرکوټلے علاقے ټولے اولوټلے۔ او بے شمیره پښتانهٔ ئے اووژل۔ احمد شاه چه د قندهار د معاملو نه فارغ شو نو د سیکانو په نیت بیا په کال سنه ۱۷۶۶ع کښې پنجاب ته راغے۔

په پنجاب باندے د احمد شاه دا اخری حمله وه۔ دا ځل هم هغهٔ د سیکانو بنهٔ غوږونه تاؤ کړل۔ ولے دا پیره هغهٔ د سیکانو سره د رواداری په پالیسئ او چلید و۔ په

دے ورځو کښے د سیکانو یو سردار چه الها سنګه نومیدو په یو جنګ کښے ګرفتار شو۔او دا حمد شاه په خدمت کښے پیش کړے شو۔ احمد شاه د دے سیک د زړورتیا، قد قامت او شکل و شباهت نه ډیر متاثر شو۔ او دے ئے د سرهند حاکم مقرر کړو۔ دغه الها سنګه وروستو د پټیالے د ریاست بانی شو۔ ولے د سیکانو شر دا ځل هم دفع نهٔ شو۔ سیکان په دے باب کښے ډیر سپین سترګی وو۔ چه احمد شاه بیرته لاړ نو دوئ بیا د غرونو نه راښکته شول۔ او د رهتاس پورے ټوله علاقه ئے لوټ کړه۔ او په ټول پنجاب کښے ئے بد نظمی پیدا کړه۔ احمد شاه بیا د پنجاب تګل کولو چه په دے موقع په ایرانی خراسان کښے بغاوت اوشو۔ دا بغاوت د شاه رخ مرزا ځوی نصرالله مرزا کړے وو۔ دا بغاوت دا حمد شاه ځوی شهزاده تیمور د نصیرخان بلوچ په مرسته ختم کړو۔

احمد شاه د سنه ۱۷۶۴ء نه ناجوړه وو۔ د هغهٔ طاقت اوس ورځ په ورځ په کمیدو او صحت ئے په پرے وتو وو۔ پرله پسے فوځ کشئیو او په یو محنه محنت د هغهٔ په صحت ډیر خراب اثرات کړی وو۔ اوس هغهٔ د سلطنت کارونو ته پوره پوره توجو نهٔ شوه ورکولے۔ نو هغهٔ خپل ټول هغه سرداران راجمع کړل کوم چه د حکومت په کار کښے د هغهٔ سره ملګری وو۔ په دے جرګه کښے د خپل جانشین په ډول د خپل ځوی تیمور نوم پیش کړو دا تجویز د څه بحث نه پس ټولو امیرانو اومنلو۔ او ټولو امیرانو شهزاده تیمور سره د وفاداری قسمونه اوکړل۔ د دے نه پس احمد شاه د ارام په غرض د کوه سلیمان د غرونو په لړ کښے د اڅک زو په علاقه کښے د طوبئ غرهٔ ته لاړ۔ دا ځائے د قندهار په نسبت زیات سوړ او اب و هوا ئے خوشګواره ده۔ دغه ځائے د هغهٔ هغه بیماری چه د کال سنه ۱۷۶۴ء نه پرے لګیدلی وه۔ زیاته شوه۔ او اخر هغه د دے بیمارئ نه په کال سنه ۱۷۷۳ء کښے د مرغئ په مقام د پنځویشت کاله حکومت نه پس وفات شو۔

احمد شاه د ډیر پاکیزه او ښو خویونو خاوند وو۔ هغه په لوظ پوره او په معامله کښے کره وو۔ د پښتون ازادی او خوشحالی هغهٔ د خپل ژوند مقصد ګرزولے وو۔ د هغهٔ په خیال کښے هغه ټول خلق پښتانهٔ وو چا چه په پښتو وئیله۔ او ځان ته به ئے پښتون وئیلو۔ د هغهٔ لوئے صفت دا وو چه هغهٔ د پښتنو ټول قبائیل د قام ولئ او عزیز ولئ په مزی کښے اوپیرل۔ او د هغوی نه ئے یو قام جوړ کړو۔ د هغهٔ ساده او بے تکلفه ژوند د خلقو په زړونو کښے د هغهٔ مینه پیدا کړی وه۔ هغهٔ ته به خلق په ډیرے اسانتیا رسیدلے شول۔ د انصاف په وخت کښے به هغهٔ د چا خ ملازه نهٔ کوله۔ او چرے به د هغهٔ د فیصلے خلاف د شکایت

موقعه طرفینو ته نه پیدا کیده له ـ هغهٔ په یو وخت کښې هم د مختلفو پښتنو قبائیلو سره خپل
تعلق نهٔ وو پرے ښودلے ـ د قبائیلو ترمینځه به ئے د یو معمولی پښتون په حیثیت د هغوی
د ماتو ګړو فیصلے کولے ـ هغهٔ به تل د پښتنو قبائیلو نه د قام ولئ او عزیز ولئ په نامه د
مرستے اپیل کولو ـ او په دے کښې به هغه همیشه کامیاب وو ـ د هغهٔ خپله ژبه او د ټول قام
ژبه پښتو وه ـ د عزیز ولئ لفظ د هغهٔ د زمانے یادګار دے ـ هغه د ډیر لوړ همت خاوند
مستقل مزاجه او مدبر بادشاه وو ـ د خپلو کارنامو له کبله ئے د ایشیا په بادشاهانو کښې خپل
ځان له د ډیر عزت او احترام مقام پیدا کړو ـ هغهٔ د قام چوڼ شوے بادشاه وو ـ او د ټول
قام مرسته ورته حاصله وه ـ هغهٔ به خپل رعیت کښې هر دلعزیز وو ـ هغهٔ د ملی وحدت
یو زبردست مبلغ او لوئ محب وطن وو ـ د وطن غرونه هغهٔ د هندوستان په شاهی محلاتو
غوره کړی وو ـ لکه چه وائی ـ

د ډهلی تخت هیرومه چه را یاد کړم
زما د ښکلی پښتون خوا د غرو سرونه

هغه نه صرف یو بادشاه وو ـ بلکه د پښتو ژبے یو ښهٔ شاعر او علم دوست انسان
وو ـ د شعرونو یو دیوان ئے موجود دے هغهٔ ته به د یو ولی الله په نظر کتلے شول ـ
او مقبره ئے تر اوسه پورے د عامو خلقو زیارت ګاه دے ـ د خپل ذاتی اخلاقو او انتظامی
قابلیت په وجه د هرچا د ستائینے وړ وو ـ او د "کرنل میلسن" په الفاظو کښې هم د
هغهٔ خازے لائق دے کومه چه د هغه په قبر ولاړه ده ـ

احمد شاه درانے د یو دبدبے خاوند وو ـ په هغهٔ کښې داسے انصاف وو چه
مزری او بزے به د هغهٔ په وخت کښې په یو ځائے اوبهٔ څښلے ـ د دهٔ د فتوحاتو
په اوازونو د دښمن غوږونه کاڼهٔ شوی وو ـ

هر هغه مؤرخ چه د احمد شاه په حقله ئے تاریخ لیکلے دے هغهٔ د احمد شاه د
ذاتی اخلاقو او انتظامی قابلیت ستائینه کړی ده ـ په دے لړ کښې ښاغلی ایلفنسټن د ذکر
وړ دے ـ دا ښاغلی مؤرخ په ډیر تفصیل سره د احمد شاه د دے پورته ذکر شوو صفتونو
بیانولو نه پس داسے وائی :ـ

دا خبره وړومبے ذکر شوی ده چه احمد شاه په ډیرے هوښیارتیا د یو لنډ
تنګ سلطنت قائمولو په نسبت د یو وسیع سلطنت بنیاد ونه کینښول ـ د هغهٔ د مړګ
په وخت کښې د هغهٔ د سلطنت پوله قبله په نمر خاتهٔ د خراسان نه تر سرهنده او د دریاځ

جيحون نه تر سسندره غزيدلے وو۔ د دے په څه حصه د هغهٔ خپله قبضه وه۔ اوڅه د عهد نامو په ذريعه د هغهٔ په سلطنت کښے شامله وه۔ او که چرے د هغهٔ په تجويزونو عمل شوے وے نو په دے کښے هيڅ شک نشته چه د هغهٔ په دے عظيم سلطنت کښے به يو پائيدار او مضبوط حکومت قائم شوے وو۔

د بد قسمتئ نه د احمد شاه د جانشين خوی خصلت د هغهٔ د خوی خصلت نه بيخي په بل شان وو۔ او کوم طرز حکومت چه تيمور په خپل سلطنت کښے جاری کړو۔دا د هغې وجه وه چه د درانو طاقت اول په ځائے اودريد او بيا ئې په زوال شو۔

د مناغلی ايلفنسټن د دے رائے سره د نورو مؤرخينو هم اتفاق دے او دا وائي چه که چرے د احمد شاه نه پس د هغهٔ ځوئے شهزاده تيمور د خپل پلار چاله نهٔ وے پرے ښودلے او هغهٔ پښتو او پښتونولی نهٔ وے هيره کړے۔او د پښتنو سره ئے خپل تعلق نهٔ وے شلولے نو د درانو دا وسيع سلطنت به د دومره زر نهٔ وو کمزورے شوے۔

احمد شاه يو پښتون طبيعته او محب وطن بادشاه وو۔ د خپل وطن سره چه د هغهٔ څومره مينه وه هغه د هغهٔ د دے لاندے شعرونو نه ښکاره ده۔ ے

ستا د عشق له وينو ډک شو ځيګرونه  ستا په لاره کښے بائلی ځلمی سرونه
تا ته راشمه زړګے زما فارغ سی  بے له تا ے اند يښنے د زړه مارونه
د دهلی تخت هيروم چه را ياد کړم  زما د ښکلی پښتونخوا د غرو سرونه
که هر څو ے د دنيا ملکونه ډير سی  زما هير نهٔ سی دا ستا ښکلی باغونه
د رقيب د ډوند متاع به تار په تار کړی  چه په تورو پښتانهٔ کا ګذارونه
د فريد او د حميد دور به بيا شی  چه زهٔ وکاندم په هر لوری تاختونه
که تمامه دنيا يو خوا تهٔ بل خوا ے  زما خوښ دی ستا خالی تش ډګرونه

احمد شاه به دغه ستا قدر هير نهٔ کا
که ونيسی د تمام جهان ملکونه

---

له پښتانهٔ شعراء اول ټوک

# تیمور شاه
## (سنه ۱۷۷۳ء تا سنه ۱۷۹۳ء)

د احمد شاه د وفات نه پس د هغهٔ دویم ځوئے تیمور شاه د پلار جانشین شو. تیمور شاه په کال ۱۷۴۶ کښے د مشهد په مقام زیږیدلے وو ـ په اکثرو جنګونو کښے د پلار سره ملګرے پاتے شوے وو. د هلکوالئ په وخت کښے د پنجاب ګورنر وو. د هغهٔ یوه ښځه مغل شهزادګئ وه. د پلار حکومت په اخری کالونو کښے د هرات او خراسان حاکم اعلیٰ وو ـ د دغه وجه وه چه هغه د ایرانی تهذیب نه زیات متأثر وو. ښاغلے ایلفنسټن وائی چه تیمور په داسے ماحول او واقعاتو کښے لوئے شوے وو. چه هغهٔ ته د خپل ملک د خلقو د خوئ بوئ او د دوی د دستورونو د زده کړے او مطالعے موقع حاصلے شوے نه وے ـ او داسے معلومیږی چه هغهٔ ته خپله قامی او مورنئ ژبه پښتو هم سمه نهٔ ورتله

د دے ښاغلی مؤرخ دا رائے تر ډیره حده درسته معلومیږی ـ تیمور حد په هورته د ایرانی تهذیب دلداده وو ـ او هغهٔ د پښتنو تهذیب و تمدن پریښنو دلے وو ـ لیکن تر څومره چه د پښتو ژبے تعلق دے دا وینا درست نهٔ ده ـ چه تیمور ته پښتو ژبه نهٔ ورتله ـ بلکه هغهٔ پښتو ژبه په اسانه او روانئ ویلے شوه ـ او کله کله به ئے په پښتو کښے شعرونه هم ویل ـ چه د نمونے په ډول به ئے څه شعرونه په دے پانو کښے په خپله موقع او لیکلے شی ـ

احمد شاه په خپل ژوند کښے د تیمور د جانشینئ وصیت کړے وو ـ او د خپلو امیرانو نه ئے د تیمور د پاره بیعت هم اخستے وو ـ ولے چه احمد شاه وفات شو نو د هغهٔ لوئے وزیر شاه ولی خان د احمد شاه د مشر ځوی شهزاده سلیمان د بادشاه کولو کوشش شروع کړو ـ ځکه چه دا شهزاده د هغهٔ زوم وو ـ ولے نورو امیراتو د دے تجویز مخالفت اوکړو ـ شاه ولی خان په خپل کوشش کښے لګیا وو ـ چه تیمور شاه د هرات نه د یو لوئے لښکر سره په قندهار راواوخوت ـ مشر وزیر چه په خپل مقصد کښے کامیاب

نهٔ شو نو د خپلو دوؤ ځامنو او دوؤ نورو اميرانو سره د تيمور شاه په خدمت کښې حاضر شو او په خپل کارئې پښيماني ظاهره کړه. ولې تيمور ته دا خبره معلومه وه چه که په دے موقع د نرمئ نه کار وا خلم نو نور خلق به هم زړور شي. او خبره به گرانه شي. نو د دے فکر په بنا کښې هغهٔ شاه ولي خان او د هغهٔ ملګرى اووژل. ليکن په دے خبره د درانو يوه لويه حصه د هغهٔ نه ناراضه شوه. او د ابداليانو ترمينځه د دے اتفاقئ د پاره دا اوله واقعه شوه. د دے نه پس تيمور شاه د خپل فوځ سره په قندهار کښې داخل شو او ټول قام هغه په اتفاق بادشاه اومنلو.

د احمد شاه په وخت کښې د هغهٔ د عظيم سلطنت صدر مقام قندهار وو. کله کله به د خپلو پرله پسے مهماتو په دوران کښې هغهٔ په کابل کښې هم پاتې کيده. ولې د هغهٔ مصروف ژوند هغهٔ ته دا موقع ورنهٔ کړه چه هغه د کابل د قدرتي ښائست او رعنايئ نه څه لطف او مزه حاصله کړي. د غه شان به هغهٔ د پنجاب د حملو په دوران کښې په پيښور کښې هم کله کله قيام کولو. په دے بنار کښې به هغهٔ د دے علاقے د پښتنو قبائيلو ګرانګ کشالے هم فيصله کولے. ولے د پيښور د ښکلا او آب و هوا د خوشګوارئ نه لطف حاصلولو ته نهٔ چرے هغه اوزګار شوے وو او نهٔ ئے چرے د دے خواهش لرلے وو. ولے چرے چه به هغهٔ فرصت بيا موند او د اوړى په موسم کښې به ورله د يو صحت افزا مقام ضرورت پليښ شو. نو هغهٔ به د اټک زو په علاقه کښې د "طوبے[1]" غرونو ته لاړ. هلته به د دے عظيم پښتون بادشاه د دے علاقے د ساده او ښکلو پښتنو په مجلس کښې رښتوني خوشحالي موندله. او د خپل فرصت وخت به ئے دلے تيرولو.

ولے تيمور شاه د بل طبيعت انسان وو. هغهٔ د خپل پلار ټول نظام اوقاعدے بدلے کړے. د تخت نشينئ نه پس د هغهٔ وړومبے کار دا وو چه هغهٔ خپله دارالخلافه د قندهار نه کابل ته منتقله کړه. په ابتدا کښې خو دا کار هغهٔ د سياسي فائدے په غرض کړے وو. د قندهار په خوا وشا کښې هغه دراني اباد وو کومو چه د تيمور په مقابله کښې د سليمان د تخت نشينئ طرفداري کړى وه. په دے خبره تيمور په زړهٔ کښې د دے خلقو نه په ويره کښې وو. د هغهٔ دا خيال وو چه څومره د دے خلقو نه لرے يم هغومره به ښهٔ وى. ولے وروستو د کابل اوړى او د پيښور ښرلى په هغهٔ داسے اثر اوکړو چه هغهٔ به په کال کښې اتهٔ مياشتې په کابل کښې او څلور مياشتې په پيښور کښې

اوسیدلو۔ او په دې قاعده کښې ئې چرې هم فرق نهٔ وو راغلے۔ پېښور د تیمورسرمائي صدر مقام وو۔ او د دې ښار سره د هغهٔ ډېره مینه وه۔ ولې د پېښور سره د مینې باوجود د پېښور په پښتنو کښې تیمور څه مقبولیت او هر دلعزیزي نه وه حاصله کړې۔ او د دې باعث د تیمور ایراني تهذیب او فارسۍ ژبې ته میلان وو۔

تیمور شاه چه کابل ته راغے نو د خپلې بادشاهۍ د مضبوطولو په فکر کښې لګیا شو۔ د ټولو نه اول هغهٔ دا کار اوکړو چه د لویو لویو سردارانو هغه اختیارات کوم چه د دهٔ پلار هغوی ته ورکړي وو۔ کم کړل۔ تیمور شاه په خپل زړهٔ کښې د درانیانو په وفادارۍ شکمن شوے وو۔ او د هغهٔ سره دا ویره وه چه که دا سرکښې او سرزوره خلق زما برخلاف متفق شي نو بادشاهۍ نه به ئې معزول کړي۔ ولې په ځرګنده هغهٔ د دې امیرانو مخالفت ته غاړه نهٔ کېښودله۔ نو هغهٔ په خپل خیال کښې یو داسې لار اختیار کړه چه مار هم مړ شي او کوټک هم مات نهٔ شي۔ هغهٔ د پلار د وخت دا امیران په خپلو عهدو قائم اوساتل۔ د هغوی ماجبونه او تنخواه ګانې ئې زیاتې کړې۔ ولې د دوئ ټول د خپلو خپلو قبیلو نه لرې د خپل ځان سره په دارالخلافه کښې اوساتل۔ او د دوئ په مقابله کښې ئې نور داسې سرداران مقرر کړل۔ چه د قام قبیلې له مخه کم حیثیته وو۔ او د خپل عروج او ترقۍ د پاره د تیمور شاه احسانمند او د هغهٔ د اعتماد قابل وو۔ په داسې سړو کښې د ټولو نه اول سړے فیض الله خان وو۔ چه د دولت شاهي فرقې مشر وو۔ دا سړے د تیمور شاه ډیر اعتباري وو۔ د دهٔ په مشوره تیمور شاه سردار پائنده خان ته چه د حاجي جمال خان ځوئے او د بارک زو مشر وو۔ د سرفراز خان خطاب ورکړهٔ۔ د غه شان ئې دلاور خان خپل سپه سالار، التفات خان ئې خزانچي او د جواهراتو امین۔ او عبداللطیف خان خراساني ئې د محصولونو جمع کولو افسر اولګولو۔ او نور محمد خان ته ئې مالیات حواله کړل۔ دا امیران د تیمور شاه د انتظامي جرګې ممبران وو۔

د دې امیرانو نه علاوه هغهٔ د خپل حفاظتي فوځ دسته د اسحاق زو نه مرتب کړه۔ چه په درانیانو کښې یوه کمزورې قبیله وه۔ او د دوئ سره ئې د قزلباشو دولس زره فوځ هم په خپلو حفاظتي دستو کښې شامل کړو۔ د پښتنو عام بے قاعده لښکر هغهٔ مات کړهٔ۔ او د دې په ځائې ئې باقاعده تنخواه دار سپاهیان اونیول۔ چه تل به په دارالخلافه کښې موجود وو۔ د دې سپاهیانو به د عامو خلقو سره څه تعلق نهٔ وو۔

نهٔ بهٔ د سلطنت د معاملاتو سره کار وو ـ په قلاره قلاره تیمور شاه لوئے لوئے سرداران
تول بے اختیاره کړل ـ او د حکومت او د قبائیلو د معاملاتو نه ئے هغوی بے تعلقه
کړل ـ او په هرځائے کښے تنخواه دار ملازمان مقرر کړل ـ د هغهٔ دا پالیسی اګرچه
په عامو حالاتو کښے خو معقوله وه ولے د پښتنو د آئین و طبیعت سره موافقه نهٔ وه ـ
په دے طریقو د بغاوتونو امکانات خو ختم شول ـ او د ملک د ننه امن و امان قائم
شو ـ ولے د دے پالیسئ په نتیجه کښے د عام اولس او بادشاه ترمینځه د قام ولئ او
عزیز ولئ په تعلقاتو کښے کمے راغے ـ عامو خلقو ته به بادشاه او د هغهٔ اهلکاران اجنبی
او بیګانه خلق ښکاریدل ـ د اولس او حکومت ترمینځه د دے اجنبیت او بیګانګئ اثر
اګر د تیمورشاه په زمانه کښے په واضح رنګ کښے نهٔ محسوس کیدلو ـ ولے د هغهٔ د جانشینو
په زمانه کښے دا بیګانګی بیخی ځرګنده شوه ـ او د عام اولس او حکومت ترمینځه بے تعلقی
دے حد ته اورسیده چه حکومت او رعیت د دهٔ دوه جدا جدا ډلے شوے ـ او دیو بل نه
ئے همدردئ او مفاد هم جدا شول ـ او احمد شاه چه د خپل عظیم سلطنت بنیاد
د پښتنو د قام ولئ او عزیز ولئ په بنیادونو استوار کړے وو ـ هغه دے پالیسئ ډیر
کمزورے کړو ـ

تیمور په خپل عهد کښے مالیاتو ته ښه توجه اوکړه او د مالیے وصولولو انتظام
ئے په ښهٔ طریقه اوکړو ـ هغهٔ خپل شاهی اخراجات کم کړل ـ مګر د فوځونو تنخواه
ګانے ئے زیاتے کړے ـ او د دے نتیجه دا شوه چه په لږه موده کښے شاهی خزانے ډکے
شوے ـ تیمور طبعًا یو صلح پسند او د جنګ نه متنفر انسان وو ـ او د خپل پلار په
نسبت ډیر ارام پسند وو ـ د هغهٔ په طبیعت کښے هغه تړخ والے هم نهٔ وو کوم چه
ترڅه حده د حکومت په معاملاتو کښے ضروری وی ـ دغه وجه وه چه د خپل مملکت د ښهٔ
انتظام باوجود د هغهٔ نه د سلطنت سرحدی صوبو د ازادئ کوششونه شروع کړل ـ
د ټولو نه اول ایرانی خراسان بغاوت اوکړو ـ دلته د احمد شاه د وخت نه د نادر
شاه نمسے شاه رخ مرزا حکمران وو ـ شاه رخ مرزا خو د تیمور شاه په باج ګزارئ
قطعی مطمئن وو ـ ولے د هغهٔ رعیت د هغهٔ د امیرانو په لمسون بغاوت اوکړو ـ دوه
ځله تیمور د دوئ د سمولو د پاره فوځونه اولیږل او فسادونه به رفع شول ـ ولے
چه شاهی فوځ به بیرته راغلو ـ نو دوئ به بیا بغاوت اوکړو ـ اخر په دریم ځل تیمور
شاه د احمد خان نورزی په ماتحتئ کښے یو لوئے فوځ د دوئ برخلاف اولیږلو ـ دا

ځل دا بغاوت دا سې ختم کړے شو چه بیا چرے هم د تیمور شاه په وخت کښې دوئ سرا وچت نۀ کړو۔

په کال ۱۷۹۱ء کښې د تیمور شاه د قتل یو سازش اوشو۔ د دے سازش له مخه د احمد شاه شپږم ځوئے شهزاده سکندر شاه د تیمور شاه په ځائے تخت نشین کول مد نظر وو۔ په دے سازش کښې د نورو امیرانو نه علاوه ارباب فیض الله خان، صاحبزاده محمدی صاحب د ځوکنو او ملک ارسلا خان مهمند شامل وو۔ په دے ورځو کښې تیمور شاه په پیښور کښې د بالاحصار په قلا کښې مقیم او د پنجاب د حملے په تابیا کښې لګیا وو۔ ارباب فیض الله خان ته د افریدو او شنوارو نه د یو نوی فوځ د مرتب کولو هدایت شوے وو۔ او هغۀ دا فوځ مرتب کړے وو۔ چه دا سازش مکمل شو نو ارباب فیض الله خان د خپلو سړو سره په دے بهانه قلا ته وردننه شو چه هغه دا نوی سپاهیان د بادشاه معائنے ته پیش کول غواړی۔ چه دوئ په قلا وردننه شول نو سمدستی ئے ټول پهرے داران اونیول. او وے وژل۔ د دے نه پس فیض الله خان د خپلو سړو سره په شاهی محل وردننه شو۔ په دے وخت کښې شاهی فوځ د قلا نه بهر په میدان کښې نمر ته ارام کولو۔ تیمور شاه چه د محل دننه دومره ډیر سړی اولیدل او شور و شرئے واؤریده نو د هغۀ سره خطره پیدا شوه۔ سمدستی د محل دوئم چت ته اوخت او د هغه ځائے نه ئے فوځ ته اشاره اوکړه۔ شاهی فوځ سمدستی قلا ته راغے۔ او د فیض الله خان د سپاهیانو سره په جنګ اخته شو۔ په دے کشمکش کښې فیض الله خان او د هغۀ ځوئے اونیولے شول۔ د سازش د نورو شرکاؤ د معلومولو په غرض فیض الله خان او د هغۀ ځوی ته ډیر عذاب ورکړے شو۔ ولے په هیڅ دستول داده نۀ شو۔ او بیا د تیمور شاه په حکم اووژلے شول۔ د پښتو مشهور صوفی شاعر حافظ الپوری چه د تیمور شاه معاصر وو۔ په خپل یو شعر کښې دے واقعے ته دا سې اشاره کړی ده۔ ؎

فیض الله په تیمور ځان نیست و نابود کړو
د نهنګ جنګ ته د کوری کله توان وی

د ځوکنو د میاں صاحب صاحبزاده محمدی په حقله هم په دے سازش کښې د شمولیت شبه وه ولے هغه په اولس کښې د خپل خاندانی احترام په وجه ډیر اثر لرلو۔ د دے اثر رسوخ په وجه تیمور شاه هغۀ ته لاس وا نۀ چوو۔ د دے

سازش بل غزے ملک ارسلاخان په تیښتنه کښے کامیاب شو- او هغه په دے موقع
د تیمور شاه په لاس رانغلو- تیمور شاه د ارسلاخان د گرفتارولو ډیر کوشش اوکړو.
ولے هغه د مهمندو د غرونو دا سے علاقے ته تلے وو چه هلته د تیمور شاه رساله
نهٔ شوه رسیدلے- لیکن دے خبرے تیمور شاه د بدل اخستلو نه منع نهٔ کړو.
د تیمور شاه او ملک ارسلاخان د واقعاتو نه د پښتنو د څینے قامی خصوصیاتو په
واضح ډول اظهار کیږی- په دے وجه د دے واقعاتو ذکر لږ په تفصیل سره
کول به نامناسبه نهٔ وی-

د تیمور شاه د لورې نه د ارسلاخان د گرفتارئ کوششونه جاری وو- او
د دے نتیجه دا شوه چه د ارسلاخان نه خپل ملگری هم لاس په سر شول- د مصیبت
په دے وخت کښے هغهٔ د اتمان خیلو علاقے ته لاړ- د تیمور شاه او ارسلاخان
د واقعاتو نه داخلق هم خبر وو- نو کوم وخت چه ارسلاخان د دے علاقے
ورومبی کلی ته اورسید نو د کلی ټول مشران د ارسلاخان مخے ته بهر ته راووتل-
او ارسلاخان ته ئے په منت اووئیل چه موږ تاخپل کلی ته نهٔ شو پرے ښودلے- ځکه
چه که تهٔ زموږ کلی ته راننوزے نو بیا به ته زموږ میلمه اوگڼلے شے- او د
پښتونولئ د آئین له مخه به ستا حفاظت په موږ فرض وی- لیکن په بل لور تیمور
شاه د بادشاهی طاقت مالک دے- او په موږ کښے د هغهٔ د مقابلے توان نشته- نو تهٔ
مهربانی اوکړه- او موږ د تیمور شاه په بدئ کښے مهٔ اچوه- ولے ارسلاخان خو
عزض اخستے وو- هغه هم په دوئ چل اوکړو- په خپله د دوئ سره په خبرو او
ښتو نوکښے تکیا شو او د دهٔ نوکرانو په بله لار د ده کهٔ کلی ته ورننویستنه-
او چه دکلی مشران د دے نه خبر شول- نو هغوی په خپلو کښے یو بل ته اووے
اوس ارسلاخان زموږ قدرمن میلمه دے- او د دهٔ حفاظت په موږ لازم- د
دے نه پس ئے هغه په عزت سره کلی ته بوتلو او ټوله قبیله جمع شوه- او د
ارسلاخان د حفاظت وعده ئے اوکړه- داخو د هغه پښتنو حال وو کوم چه د تهذیب
د داٸرے نه لرے په غرونو کښے اوسیدل- اوس د تیمور شاه کردار ته هم اوگورئ.
تیمور شاه چه د ارسلاخان د گرفتارولو نه نا امیده شو نو د فریب نه ئے کار
واخستلو- هغهٔ به په عامو خاصو مجلسونو کښے داوئیل چه ما ارسلاخان بخښلے دے.
ورو ورو د معافئ دا خبرے په خلقو کښے خورے شوے- څه موده پس هغهٔ ارسلاخان

ته قران شریف ورا ولیږلو چه د هغې په یوځ ئے د ارسلا خان دمعاف کولو وعده کړې وه. او په دے وعدے ئے خپل شاهي مُهر لګولے وو. ارسلا خان د تیمور شاه په قسم او وعده اعتبار اوکړو. او هغه پیښور ته راغے. او خپل ځان ئے بادشاه ته حواله کړو. ولے هم په هغه ورځ د تیمور شاه په حکم هغه اووژلے شو. په دے دستور تیمور شاه خپل هوډ ترسره کړو. لیکن د هغه دا فعل د پښتنو د روش نه بیخي خلاف وو. دا درست ده چه پښتانهٔ خپل بدل نهٔ پرېږدی. ولے دا هم یقیني ده چه پښتانهٔ خپله وعده هم نهٔ ماتوی. او د چا سره چه په قران قسم او د خپل شخصي ضمانت په اعتماد د سر د امن لوظ اوکړی. د هغې نه هم په هیڅ دستورنهٔ اوړی. دغه وجه وه چه د پښتنو په نظر کښې د تیمور شاه ایمانداری داغداره شوه. او دوئ د هغهٔ په دے بے لوظئ د هغهٔ نه متنفر شول. او تر اوسه هغه په دے پښتنو کښې د یو پښتون بادشاه په نسبت په پارسي خوان مشهور دے.

په کال ۱۷۸۱ء کښې تیمور شاه د سندهـ او ملتان په لور روان شو. دملتان ګورنر د سیکانو د غلبے له کبله قلعه هغوی ته حواله کړې وه. سندهـ هم باغي شوے وو. د دے لاینحو مسئلو په غرض د تیمور شاه تلل ضروری وو. دملتان سره نژدې هغهٔ سیکان ښهٔ ګوښمال کړل. او په قلعه ئے بیا قبضه اوکړه. د سندهـ او بهاولپور په علاقو کښې ئے هم د باغیانو غوږونه تاؤ کړل. په دے تاختونو او ملو کښې ملک ته ډیر نقصان اورسید. سندهـ هسې خو اطاعت اختیار کړے وو ولے چه تیمور شاه کابل ته راغے نو هغوی بیا سر پورته کړو. دغه وخت د بادشاه مخ ته نورے اهمې کشلے پرتے وے. او د هغې په وجه ئے د پڅو کالو پورے د سندهـ په لور توجو او نهٔ کړے شوه. اخر په کال ۱۷۸۶ء کښې تیمور شاه د سندهـ د کشالے په غرض خپل سپه سالار دلاور خان اولیږلو. دا څل تالپوری سردارانو د میر فتح علي خان په مشرئ کښې یو لوئ فوځ تیار کړے وو. د دے فوځ په مرسته هغوی د دلاور خان سخته مقابله اوکړه. دلاور خان د ډیر نقصان نه پس شکار پور ته په تیښته راغے اخر د طرفینو په مینځ کښې صلحه اوشوه. سندهي امیرانو د خراج او تاوان جنګ ادا کولو وعده اوکړه. او د بادشاه د لوری نه د سندهـ حکومت فتح علي خان ته حواله شو. درے کاله پس تالپوری سردارانو د دے معاهدے نه بیا ځان ازاد کړو.

په دغه ورځو کښې د کشمیر حاکم آزاد خان هم بغاوت اوکړو. په دے مهم

سردار مدد خان مقرر شو - او سردار پائنده خان هم د هغهٔ ملګرے وو - د ازاد خان بر خلاف شاهی فوځونو کامیابي حاصله کړه - ازاد خان شکست بیا موُند. په دے لام کښے بادشاه د سردار پائنده خان د کارګزارئ نه ډیر خوشحال شو - او هغه ئے د شال (کوټي) علاقے ته د مالیئ د وصولولو په غرض اولیږلو - دا کار هم هغهٔ په ډیره ښه طریقه سر ته اورسولو - بیا ئے په کال ۱۷۸۸ء کښے د بهاول خان سرکښی هم ختمه کړه - او هغه ئے په خراج ورکولو اماده کړهٔ -

څه رنګ چه د سنده او کشمیر په سرحدی صوبو کښے د حکومت د اطاعت[۱] سستے شوے وے د غه شان د تیمور شاه په یو بله سرحدی صوبه افغانی ترکستان کښے هم شور و شر پورته شوے وو - د دے صوبے ته د بخارا بادشاه "شاه مراد" سترګے خړے کړی وے - د دهٔ په لمسون بلخ او آخچه " باغی شول - تیمور شاه چه د دے نه خبر شو نو اول ئے شاه مراد ته یو نصیحت امیز خط اولیکلو - خو چه په دے کار او نهٔ شو نو په کال ۱۷۸۹ء کښے یو لوئے لښکر سره په خپله د بلخ په لور روان شو - د تیمور د مقابلے په غرض د بخارا بادشاه شاه مراد هم په جیحون راپورے وتو - د آخچه سره نزدو دواړه فوځونه مخامخ شول - که چرے پښتنو سمدستی حمله کړے وے نو کټه به ئے کړی وه. ولے د شاه مراد چالاکئ او د تیمور شاه تذبذب شاه مراد ته د تیارئ ښه موقع په لاس ور کړه - د دے نه پس هغهٔ د صلح په غرض تیمور شاه ته یو وفد رااولیږلو - او په بلخ او آخچه ئے د تیمور شاه د حکومت منلو په دے شرط اقرار اوکړو چه تیمور شاه به د جنګ نه بغیر بیرته ځی - تیمور شاه سمدستی دا خبره منظو رکړه - او دا علاقے هسے په نوم د تیمور شاه په سلطنت کښے شاملے پاتے شوے - د دے نه لږه موده پس هغه د پیښور نه کابل ته روان وو چه په لاره کښے ناجوړه شو - او په ۲۰ مئ ۱۷۹۳ء وفات شو.

بنا غلے قاضی عطاء الله خان مرحوم په خپل تاریخ پښتون جلد اول کښے د فرانسیسی سیاح فیریر د ځلے داسے واځ چه په افغانستان کښے د تیمور شاه حکومت د عدل و انصاف د پاره مشهور دے - هغه یو رحمدل او تن اسانه بادشاه وو - بلا وجه سختی کول د هغهٔ د طبیعت نه خلاف وو - مګر هغه په ځانے د پښتنو د رواجونو او طرزِ

---

۱ ازاد خان په سرکښئ کښے څه سود بیا موند
د غه خال د هر باغی اهل طغیان دے (حافظ الپوری)

زندګۍ ایرانی طرزِ معاشرت ته زیات ترجیح ورکولو - د پښتنو کوم رنګ چه د احمد شاه په زمانه کښې حکومت ته حاصل وو - هغه ددهٔ په زمانه کښې بلکل تت شو - تر دې پورې چه هغهٔ په خپله او د هغهٔ سردارانو هم پښتو ژبه قریب قریب هیره کړه - او فارسۍ ژبې د کابل په دربار کښې عروج حاصل کړو - هم د تیمور شاه د زمانه حکومت نه د پښتو ژبې زوال شروع شو - او د دفتری ژبه په ځائې د پښتو فارسی شوه - د پښتنو قاعدې دودونه، اخلاق ورو ورو بدلیدل شروع شول - او په پښتنو سردارانو کښې د ایرانیانو او قزلباشو خویونه پیدا شول - او

د مرحوم قاضی صاحب په خپلو الفاظو کښې دا هم د تیمور شاه د عهد اثر دې چه د پښتون بادشاه په دربار کښې د پښتو ژبه ویل نهٔ وه زده - او د قبائیلو او اراکین سلطنت په خوئ بوئ ناسته پاسته رواجونو او طرزِ ګفتګو کښې دومره فرق پیدا شوې دې چه یو اجنبي سړې چه دې دواړو فرقو ته اوګوری نو د کابل په سردار خیلو پښتنو باندې به ئې هډو د پښتنو ګمان او نهٔ شی - دا هم د تیمور شاه د عهدِ حکومت نتیجه ده چه تاجک قزلباش او نور فارسی خوان قومونه پښتنو قبائیلو ته په سپک نظر ګوری - او پښتانهٔ د افغانستان په غیر مهذب قومونو کښې شمیری - او هم د دې پالیسۍ په وجه د یو څو پښتنو سردارانو نه علاوه د حکومت په اهمو معاملاتو کښې د قبائیلو ډیر کم لاس دې" او دا یو افسوس ناکه خبره ده چه د پښتنو د حالت په باب کښې چه بناغلی قاضی صیب څه لیکلی دی. په هغې کښې ترنن زمانې هم څهٔ خاص فرق نهٔ دې راغلې -

لکه چه او وئیلې شول تیمور شاه د ایرانی تهذیب و تمدن او فارسۍ ژبې نه ډیر متاثر شوې وو - او د دې مینې په وجه ددهٔ په زمانه کښې د احمد شاه دزمانې هغه رنګ ډیر تت شوې وو - بیا هم دا درست نهٔ ده چه تیمور شاه پښتو ژبه هیره کړې وه - تیمور شاه دفارسۍ ژبې یو ښهٔ شاعر وو - لیکن کله کله به ئې په پښتو کښې شعرونه وئیل او دا په دې دلالت کوی چه د پښتو ژبې سره هغهٔ خپل تعلق پرې ښودلې نهٔ وو - د هغهٔ دا یو څو شعرونه د نمونې په ډول لیکلې شی - ؎

نن ے بیا له تورو سترګو سره جنګ دے | پر لبانو ئے د زړهٔ د وینو رنګ دے
که ے کیږدی په سر لاس ورله راسم | لا په داغ باور نهٔ سی زړهٔ ئے تنګ دے
ستا د حسن لښکر راغ ځان ے بائیلو | د عاشق د زړهٔ میدان هر ګوره تنګ دے
عشق او مشک پټول نهٔ سی تیمور شاه | چه په خپله ځان رسوا کا هغه رنګ دے[1]

---

[1] پښتانهٔ شعراء اول ټوک ص ۳۲۹

# زمان شاه

د تیمور شاه درویشت ځامن او دیارلس لونړه وې. د جانشینۍ په مقله هغه څه وصیت نه ووکړې. د هغه د مرګ په وخت کښې د هغه مشر ځوی همایون مرزا چه مور ئې د سدوزو د قبیلې وه. په قندهار کښې حکمران وو. د هغه دویم ځوئ محمود مرزا او حاجي فیروز الدین مرزا په هرات کښې وو. د دوئ مور د پوپلزو د قبیلې وه. د تیمور شاه د وفات په خبرید و د دې چورته ذکرشوو شهزادګانو نه علاوه د تیمور نور ټول ځامن کابل ته راغلل. په دوئ کښې عباس مرزا چه په پښېبور کښې وو. د خپل جسمانی شهزوئ او پهلوانۍ له کبله د هرچا خوښ وو. او د دهٔ د بادشاه کیدو توقع وه. ټولو شهزادګانو د طاقتورو امیرانو سره صلاح مصلحت شروع کړو. ولې د دوی بادشاه د انتخاب فیصله سمد ستی او نهٔ شوه. او چه څهٔ وخت سرداران او شهزادګان د تیمور شاه د تجهیز و تکفین نه فارغ شول. نو د غه وخت هر یو شهزاده په سردارانو کښې خپله پره جنبه پیدا کړې وه. د غه وجه وه چه د بادشاه د انتخاب خبره ګرانه معلومیده.

د زمان مرزا او شجاع مرزا مور یوسفزۍ وه. د دې میرمنې په ټولوکښې قابل او طاقتور سردار پاینده خان په خپله پره راړولے وو. دا سردار چه د بارک زو د طاقتورې قبیلې مشر وو. په عقل او دور اندیشۍ کښې هم د ټولو سردارانو نه زیات وو. د دهٔ په مشوره د بادشاه د انتخاب د پاره ټول امیران او شهزادګان په یو خاص ځائ کښې جمع شول. د غه ځائ ته د وسلې راوړلو اجازت نهٔ وو. چه ټول مدعیان جمع شول نو د څه معمولی بحث و مباحثې نه پس اول زمان مرزا د جرګې نه پاڅیدو. او په دهٔ پسې پاینده خان هم را اووتو. او د راوتلو سره ئې سم په نورو خلقو پسې دروازه بنده کړه. او د جرګې د ځائ نه ئې اول فوځ تاؤ کړو. د دې نه پس د زمان مرزا بیعت اوشو. او ټولو خلقو بې د خپلو ورونو هم هغه بادشاه اومنلو.

د تخت نشین کیدو نه سمدستی پس هغهٔ اول کار دا اوکړو چه خپل ورونه ئے په بالا حصار کښے قید کړل - ولے د څو ورځو ولوږ و تندو تیرولو نه پس خپلو وروڼو هم هغه بادشاه اومنلو- زمان شاه اوس هغه سردارانو ته مخه اوکړه کوم چه د دهٔ د تخت نشینئ نه مخالف وو - په د ے سردارانو کښے څینے خو رضا شول - او د دهٔ حکومت ئے اومنلو- او چه کومو مخالفت پر ے نښود، هغوی ئے اووژل - او په خپل خیال کښے ئے د ځان د پاره لاره اوزگاره کړه-

د دے نه پس ئے د قندهار د فیصلے اراده اوکړه- دلته د هغهٔ مشر ورور همایون مرزا حکمران وو- شاه زمان د یو لوئے فوځ سره د قندهار د فیصلے په غرض روان شو - د دواړو ورونو مقابله د "کلات غلزی" سره اوشوه - په جنگ کښے زمان کامیاب او همایون بلوچستان ته اوتښتیدهٔ- قندهار هم د زمان شاه په حکومت کښے شامل شو- د قندهار دګټلو نه پس هغه د هرات په نیت روان شو- دلته د هغه دویم ورور محمود مرزا حکمران وو- خو د دواړو رونو ترمینځ روغه اوشوه- او د هرات حکومت محمود څخه پاتے شو- زمان شاه کابل ته راغے-

د خپلے تخت نشینئ په اغاز کښے زمان شاه د خپل پلار نیکهٔ چاله پر ے ښودله- د دهٔ دا خیال وو چه پښتنو سردارانو به زما د پلار د نرمئ نه ناجائزه فائده اخستله- اوکه چر ے زهٔ هم د دوئ سره نرمی شروع کړم نو خبره به نوره هم خرابه شی- نو هغهٔ د ناپوهئ نه کار واخست او د پښتنو د ټولو لویو سردارانو نه ئے اختیارات واخستل- او هغوی ئے بے لاسو بے پښو پر ے ښودل - په هغوی ئے جاسوسان مقرر کړل - اکثر سرداران ئے گرفتار کړل- د هغوی تنخواه گانے او ماجبونه ئے بند کړل - ان چه هغه پائنده خان چه د هغهٔ په برکت زمان شاه تخت حاصل کړے وو- هغه ئے هم بے اختیاره کړو-

د خوف و دهشت د د ے پالیسئ نتیجه دا شوه چه د پښتنو ټول لوئے لوئے سرداران په خپلو ځائونو اوویریدل - اولړے لړے ځایونو ته اوتښتیدل - او د بادشاه برخلاف ئے سازشونه شروع کړل -

د تیمور شاه د مرګ (۱۷۹۳ئ) په وخت کښے د سدوزو په سلطنت کښے دکشمیر پنجاب ، پیښور ،کابل ، قندهار ، هرات ، بلخ ، خلم ، ملتان او د غزنی علاقے شاملے وے بلوچستان ، سنده او ایرانی خراسان د باجګذارو صوبو په حیثیت کښے د د ے سلطنت حصے وے - ولے د شاه زمان د پالیسئ په نتیجه کښے په ټول سلطنت کښے بے اطمینانی پیدا شوه-

او هرے صوبے د سرکښئ اراده اوکړه۔ اگرچه د پنجاب صوبه د سرهند پورے د تیمور شاه په وخت کښے د هغهٔ په سلطنت کښے هسے تش په نوم شامله وه۔ او اصلی طاقت د سیک سردارانو په لاس کښے وو۔ او د » دره مارګله « او » حسن ابدال « پورے ټوله علاقه بانڈے د سیکانو اقتدار راخور شوے وو۔ بیا هم دا صوبه د سدوزو د سلطنت نه په قطعی ډول نهٔ وه شلیدلی۔ ولے چه د شاه زمان د پالیسئ په نتیجه کښے چه په کابل کښے د شاهی کورنئ او سردارانو ترمینځه کشمکش شروع شو نو د دے اول اثر په پنجاب پرے وتو۔ او سیکانو خپل اقتدار نور هم زیات کړو۔

دا زمانه د هندوستان د مسلمانانو او افغانستان د پښتنو د پاره ډیره نازکه وه په هند کښے د مغلو عظیم الشانه سلطنت د بے وارثه جائداد په شان یرغ شوے وو۔ یو طرف ته انګریزان، فرانسیسیان او نور یورپی قامونه د تجارت په پرده کښے د دے سرو زرو مرغئ په نیولو کښے لګیا وو۔ او انګریزانو په کښے دومره طاقت حاصل کړے وو۔ چه اوس ئے مرهټا ته بهٔ ے وهلے۔ بل لور ته د مرهټیانو د احمدشاه د هیلے زخمونه هم جوړ شوی وو۔ او بیا په کښے ساه راټیدلی وه۔ او د خپل اقتدار د حصول په غرض د انګریزانو سیالئ ته راوتلی وو۔ په جنوبی هند کښے حیدرعلی او د هغهٔ نه پس د هغهٔ ځوانمرد ځوی سلطان فتح علی خان شهید (ټیپو) انګریزانو او مرهټیانو دواړو طاقتونو د خپل اقتدار په لاره کښے یو لوئے بندیز ګڼلو۔ او د هغهٔ د تباه کولو په غرض ئے د هیڅ خبرے نه مخ نهٔ اړولو۔ د مسلمانانو مرکزی طاقت بیخی ختم شوے وو۔ د هند مسلمانان نوابان د خپلو بے اتفاقیو له کبله د خپل حفاظت جوګه نهٔ وو۔ او د انګریزانو د استعماری پالیسئ اژدها ورته وازه خله نیولی وه۔ او په قلاره قلاره ئے دوئ یو یو تیرولو۔ په پنجاب کښے سیکانو ملک تنور کړے وو۔ په دے خوفناکو حالاتو کښے په هند کښے د سلطان شهید په ذات کښے د امید څه رڼا ښکاریدله۔ او په افغانستان کښے د شاه زمان د ذات نه د دے حالاتو د بدلولو توقع کیدے شوه۔ ولے هندی مسلمانان د غیرمسلم طاقتونو په ژرنده کښے دلیدل۔ او په افغانستان کښے پښتانهٔ مسلمان په خپل مینځ کښے په خونړی سازشونو او کورنو جنګونو کښے بوخت وو۔ که چرے د غه وخت زمان شاه د عقل نه کار اخستے وے۔ او د خپلے غلطے پالیسئ په نتیجه کښے ئے خپل وفادارا سرداران خپلے دشمنئ ته نهٔ وے اړولے او د هغهٔ رونړو هم د خود غرضئ او ذاتی مفادو خیال پریښے وے نو ډیره ممکنه وه۔ چه نه به د پنجاب صوبه د سدوزو د سلطنت نه داسے زر شلیدلی وه۔ او نه به په هند

کښې مسلمانانو ته دومره صدمه رسېدلې وه ولې داسې اونه شوه.

د مشکلاتو او کورنۍ مخالفت باوجود زمان شاه څو ځله د پنجاب د تسخیر او د هغه د حملې په اراده په اباسین رابورې وتو. او د پنجاب په دوباره تسخیر کښې تر څه حده کامیاب هم شو. ولې په هر ځل به هغه د خپلو ورونو د بغاوتونو په وجه په بیرته ستنېدلو مجبور شو. دې کښې شک نشته چه د زمان شاه په لاره کښې په مشکلاتو پیدا کولو کښې انګریزانو هم پوره پوره وس کړې وو. ولې د هغه په ناکامیابۍ کښې د انګریزانو نه زیاته او موثره حصه د هغه د خپلو ورونو او سردارانو د سازشونو او مخالفت وه.

زمان شاه چه د خپلې پالیسۍ مطابق په خپل خیال کښې د امیرانو طاقت ختم کړو. او خپل ځان ئې د هغوی د مخالفت نه بې غمه اوګڼلو. نو په اول وار د پنجاب د حملې په نیت پلیښور ته راغې. خو د راررسیدو سره سم په قندهار باندې د همایون د حملې نه خبر شو. او په ډیره تندۍ قندهار ته روان شو. همایون په خپله اراده کښې کامیاب نه شو او بیرته سند ته په تیښته روان وو. چه په لاره کښې د شاه زمان سړواونیولو. او د شاهي حکم مطابق ړوند کړې شو. او باقي عمرئې په قیدخانه کښې تیر کړو. همایون خو د عون ګڼلو په ځائې خپلې سترګې هم بائیلودې ولې زمان شاه ئې د پنجاب د حملې نه اتال کړو. او د غه شان ئې سیکان نور هم ګیره کړل.

د قندهار د فیصلې نه پس زمان شاه د درهٔ بولان په لاره د تالپوری سردارانو د سولو په عرض سند ته روان شو. ځکه چه د دوی په مرسته همایون په قندهار باندې د حملې جرأت کړې وو. د دې نه علاوه دې سردارانو د ډیرې مودې نه د خراج رقم لیږل هم بند کړی وو. ولې زمان شاه ایله تر سنده راررسیدلې وو. چه هغه د محمود د تیاریانو نه خبر شو. په دې وجه زمان شاه د میر فتح علي خان تالپور سره صلح او کړه. د ریبه برخه خراج ئې ورله معاف کړو. او درې لکه پونډ ونه ئې د باقي خراج په ډول وصول کړل. او میر فتح علي خان ئې په زور د دستور د سند د باجګزار حکمران پریښنو. او په خپله په ډیرې تندۍ قندهار ته راغې. محمود هم د مقابلې د پاره د هرات نه راروان شوې وو. د ګرشک. په مقام د دواړو ورونو تر مینځه جنګ اوشو. چه محمود په کښې تیښته اوکړه. او د، فراه،، په قلا کښې ئې پناه واخستله. زمان شاه هرات ته لاړ. مګر دا ځل ئې بیا د محمود سره صلح اوکړه. او د هرات حکومت ئې هغهٔ ته پریښود.

د محمود او زمان شاه د جنګ په وخت کښې په افغانی ترکستان کښې اوزبکو اړې ګړې

پیدا کړے وو- ولے چه زمان شاه په محمود بریالے شو نو اوزبک هم په رودآمو پورے وتل - او د زمان شاه سره ئے صلح اوکړه - په دغه ورځو کښے د کشمیر بغاوت هم ختم کړے شو - او په ملک کښے امن و امان قائم شو - او یو ځل بیا د زمان شاه په زړهٔ کښے د پنجاب د تسخیر تلوسه اولړزیده -

زمان شاه په کال ۱۷۹۵ء کښے د پنجاب د حملے په غرض پلیښور ته راغے او د یولوئے لښکر سره په اټک پورے شو - په حسن ابدال کښے دیره شو - او د دے ځائے نه یو فوځی دسته د قلعه رهتاس د تسخیر په غرض اولیږله - چه سیکانو پرقبضه کړی وه - په دے قلا قبضه اوشوه - او سیکان غرونو ته اوتښتیدل - زمان شاه لا د حسن ابدال نه وړاندے نهٔ وو تلے چه هغهٔ ته په ایرانی خراسان باندے د حملے خبر راغے - دا حمله د ایران بادشاه آغا محمد شاه قاجار کړی وه زمان شاه بیا د دے مجبورئ له کبله کابل ته لاړ - او د محمد شاه قاجار مقابلے ته ئے یو لوئے لښکر تیار کړو - ولے جنګ اونهٔ شو - خبره په روغه خلاصه شوه - محمد شاه قاجار مقبوضه علاقے پرے ښودلے او ایران ته لاړ -

د دے نه پس زمان شاه بیا په کال ۱۷۹۶ء کښے د پنجاب په غرض پلیښور ته راغے - او دا ځل ئے د لاهور پورے علاقه د سیکانو نه خالی کړه - او د هندوستان د حملے په تیارئ کښے لګیا شو - چه بیا د محمود یاغیتوب نه خبر شو - له بدے ورځے بیا د لاهور نه قندهار ته لاړ - او د محمود په جنګ روان شو - مقابله اوشوه - محمود سره د خپل ځوی اوتښتید ایران ته لاړ - او د شاه ایران سره ئے سیاسی پناه اونیوله - په هرات د زمان شاه قبضه شوه - او هلته هغهٔ خپل ځوئے قیصر مرزا حاکم کړو -

زمان شاه یو ځل بیا په کال ۱۷۹۸ء کښے د هندوستان د حملے په نیت لاهور ته راغے - او د علاقے انتظام ئے سم کړو - او د سیکانو سره ئے هم روغه اوکړه - او هغوی هم د بادشاه اطاعت اومانهٔ - زمان شاه لا د حملے په انتظاماتو کښے لګیا وو - چه هغهٔ ته په ایرانی خراسان باندے د حملے خبر راغے - ایرانیانو دا حمله د فتح علی شاه قاجار په سرکردګئ کښے د پیرنګیا نو په لمسون کړی وه - پیرنګیان چه په لاهور باندے د زمان شاه د قبضے او هند باندے د هغهٔ د حملے د ارادے نه خبر شول - نو د هغوی سره ډیره ویره شوه - د مرهټیانو دسترګو د وړاندے هم د احمد شاه د حملے نقشه راغله - ولے انګریزان د پښتنو او مرهټیانو دواړو په نسبت یو چالاک او دوراندیش قوم وو - هغوی تش دا نه چه د زمان شاه د

حملے د مدافعت په غرض ئے خپل فوځئ طاقت مجتمع کړو۔ بلکه زمان شاه ته ئے خپل زوړ حریف هم او پاړولو۔ د زمان شاه دا حریف هم هغه فتح علی خان قاجار د ایران بادشاه وو. چه دانګریزی سفیر په لمسون په ایرانی خراسان باندے حملے ته تیار شوے وو۔ زمان شاه چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغه بیا په ډیرے تنډئ دکابل په لور را روان شو۔ او په کال ۱۷۹۹ء کښے پیښور ته رااورسیده۔ دراتلو په وخت کښے دجهلم په سیند کښے د هغهٔ نه یو څو توپے ډوبے شوے وے۔ دا توپے څو ورځے پس د سیکانو یو سردار رنجیت سنګهه د سیند نه رااوویستلے او په زمان شاه پسے ئے پیښور ته اولیږلے۔ زمان شاه په دے خبره دومره خوشحال شو چه رنجیت سنګهه ئے د پنجاب ګورنر مقرر کړو۔ او هغهٔ دګورنر په حیثیت په لاهور کښے استوګنه اختیار کړه۔

د توپو دا راویستل او په شاه زمان پسے لیږل د رنجیت سنګهه د عروج د پاره یوه زینه شوه۔ اوس هغه د بادشاه دلوری نه د پنجاب جائز حکمران وو۔ او د خپل اقتدار په زیاتولو کښے لګیا شو۔ د دے نه پس د پنجاب صوبه عملاً د سیکانو لاس ته راغے۔ او د دوئ طاقت دومره زیات شو چه د هند د مسلم بادشاهانو او وسطی ایشیا تر مینځه کوم تعلق چه د اَته سوو کالو نه قائم وو هغه تعلق اوس د سیکانو په دے اقتدار قطع شو۔ او د اباسیند نه په نمرخاته د سیک ریاست بنیاد کیښودلے شو۔ د زمان شاه دلوری نه په نادانستګئ کښے دا یو داسے کار اوشو چه انګریزان ئے د یو لوئے غم نه خلاص کړل۔ فتح علی شاه قاجار چه په ایرانی خراسان کومه حمله کړی وه۔ په هغ کښے هغه په خپله خوکامیاب نهٔ شو۔

ولے په دے حمله د انګریزانو مراد تر سره شو۔ د دے نه پس زمان شاه ته داسے واقعات پیښ شول۔ چه هغه هیڅ د هندوستان دراتلو جوګه پاتے نهٔ شو۔ او کوم وخت چه هغهٔ هند ته بیا راغلو نو د یو مقتدر بادشاه په حیثیت کښے نه بلکه دانګریزانو دیو وظیفه خوار سیاسی پناه ګزین په حیثیت چه نهٔ صرف د بادشاهی شان و شوکت نه محرومه شوے وو۔ بلکه د سترګو د نعمت نه هم محرومه وو۔

د فتح علی شاه حمله خو کامیابه نهٔ شوه۔ ولے محمود چه ایران ته د څه کومک په طمع تلے وو۔ دغه وخت د څه فوځ په جمع کولو کښے کامیاب شو او د دے فوځ په مرسته ئے په هرات حمله اوکړه۔ د زمان شاه ځوی قیصر مرزا د هغهٔ مقابله اوکړه۔ ولے شکست ئے اوموند۔ محمود هرات محاصره کړو۔ او نزدو وه چه ښارئے قبضه کړے

وې. ولې په دې موقعه د زمان شاه وزیر وفادارخان په ډېر چل ول د محمود چل ماکرۍ په هغه بې اعتباره کړل. او د دې نتيجه دا شوه چه هغوی محمود په ډاګه پرېښو او ترینه خواره واره شول. محمود چه یواځې شو نو اول "خیوا" ته لاړ بیا د هغه ځای نه دوباره د شاه ایران دربار ته اورسید. او د هغه ځواځ اونیوله. دغه وخت اګرچه د زمان د لاسه د پنجاب صوبه عملاً وتلې وه. خو په نور ملک کښې په ظاهره کښې امن و امان ښکاریدو. ولې دا د یو لوی طوفان د راتلو نه مخکښې د سکون علامه وه. په حقیقت کښې د سلطنت بنیادونه خوځیدلی وو.

لکه چه وړاندې وئیلې شوی دی. زمان شاه د خپل پلار نیکه د پالیسۍ نه برخلاف د قبائیلو د مشرانو نه ټول اختیارات اخستی وو. او په هغوی ئې پټ پټ جاسوسان مقرر کړی وو. په دې خبره ټول صاحب اقتدار مشران د هغه نه ناراض وو. د زمان شاه د دې پالیسۍ ذمه وار د هغه وزیراعظم وو. چه په ځته سدوزې، په نامه رحمت الله خان او خطاب ئې "وفادارخان" وو. دا سړې د ډیرو ذلیلو اخلاقو خاوند، ډیر خوشامند په خوله پوست ولې په زړه کښې درغل بنیادم وو. هر یو سردار د ده د لاسه دردیدلې او ترټیدلې وو. ولې په ټولو سردارانو کښې د زمان شاه هم په دې سردار ډیر اعتماد وو. چونکه ټول سرداران د دې وزیر په اقتدار ناراض وو نو ځینې مقتدرو سردارانو د کال ۱۷۹۹ء په اخر کښې د وفادارخان د وژلو او د زمان شاه د معزولۍ سازش اوکړو. په دې سازش کښې شپږ کسه لوی لوی سرداران شامل وو چه سرکرده ئې هغه سردار پائنده خان وو. چه د بارک زی قبیلې مشر او د ده په مرسته زمان شاه تخت موندلې وو. سازشیانو په خپلو کښې دا معاهده کړی وه چه (۱) زمان شاه بِه معزول کړې شی. او د هغه په ځای بِه شاه شجاع بادشاه شی. (۲) آئنده به د قام د مشرانو په خوښه بادشاه منتخب کیږی. او (۳) کوم بادشاه چه د تخت نشینۍ نه پس د قومی تقاضو موافق کار نهٔ کوی. نو سرداران به ئې په خپل اختیار معزولوی.

د بد قسمتۍ په دې سازش لوی وزیر وفادارخان خبر شو. او هغهٔ شاه زمان ته د سازش بیل بیل غړی په ګوته کړو. دا ټول سرداران د شاه زمان په حکم سمدستی ګرفتار شول. په ځای د دې چه شاه زمان د دې سردارانو معقولو مطالباتو ته فکر کړې وې او هغه ئې منلې وې. شاه زمان دا ټول سرداران په خپل دربار کښې اووژل. په دې سردارانو کښې دا قتدار له مخه زیات طاقتور او قدرمن سردار پائنده خان وو.

ولې بادشاه د پاڼنده خان په مرګ هم صبر نهٔ شو. بلکه د بارک زو او محمد زود نورو سرکرده مشرانو د ګرفتارولو حکم ئې اوکړو. په دوئ کښې د پاڼنده خان ځوئ سردار فتح خان هم وو. ولې دغهٔ د چلې ګرفتارئ نه اول اول اوتښتېدو او خپل ځان ئې نيغ شاه محمود ته اورساوهٔ چه دغه وخت په ايران کښې د سياسي پناه ګزين په حيثيت اوسيدلو.

که په يو لور د پاڼنده خان قتل او د فتح خان تېښته د شاه زمان د پاره سپيره شوه نو په بل لور دا د شاه محمود د پاره ډيره بختوره شوه. د فتح خان په شان هوښيار او زړور سړے چه د محمود سره يوځائے شو نو د هغهٔ قسمت ئې بدل کړو. هغهٔ محمود ته دا صلاح ورکړه چه ډير دوو د کومک په طمع دربه درګرځيدلو نه دا غوره ده چه تهٔ د خپل قام نه د شاه زمان برخلاف د مرستے اوکومک غوښت اوکړے. محمود هم دا صلاح غوره کړه او د اتلسو ملګرو سره د ايران نه راروان شو. "فراه" ته راغے. او دلته کښې ئې د فتح خان په قابلتوب د بارک زو مرسته حاصله کړه. د ابداليانو نورے ټبے هم د دهٔ په مرسته اودريدے. او چه محمود خپله پره جنبه مضبوطه کړه. نو بيا د قندهار د تسخير په تکل روان شو. د قندهار حاکم د محمود مقابله او کړه. ولے خوندے او نهٔ کړو. او قلا بند شو. محمود ښار محاصره کړو. دا محاصره څلويښت ورځو پورے جاري وه. خو دا ګرانه هم د فتح خان زړورتيا او هوښيارتيا اسانه کړه. فتح خان ايکی يواځے د ښوائے په ډول ښار ته ورد ننه شو. او هلته ئې د پښتنو سرداران د محمود په مرسته راواړول. او دغه شان قندهار د محمود په لاس راغے.

شاه زمان چه د سر سرداران اووژل نو د هغهٔ په زړهٔ کښې دا خوش فهمي پيدا شوه چه د دے واقعاتو په وجه به سازشونه بيخي بند شي. او ځکه هغه د يو لوئے لښکر سره پيښور ته راغے. او د دے ځائے نه ئې د کشمير د بغاوت ختمولو په غرض پنځلس زره فوځ اوليږلو. دا فوځ د خپلو کمانډارانو د بے عقلئ له کبله بيخي تباه شو. دغه وخت کښې شاه زمان د محمود د فتوحاتو نه خبر وو. ولے هغهٔ خپل طاقت ته دا سے غاوره وو چه د محمود نه ئې هيڅ سترګه نهٔ سوزيدله. او په دے کښې هغه ډير ګرم نهٔ وو. ځکه چه د دے نه وړاندے څو څو ځله محمود ته د هغهٔ د لاسه بد بد شکستونه په نصيب شوي وو. خو دا پيره حالت بدل وو. دا ځل د محمود

په مرسته د هغه زمانې د افغانستان د پښتو د ټولو نه زيات قابل، مدبر او زړه ور سړے فتح خان ولاړ وو. او شاه د فتح خان د قابليتونو اندازه غلطه لګولې وه. شاه زمان په پېښور کښې د خپل ورور شجاع په کمان کښې يو لوئ فوځ پرېښو. او په خپله د څه فوځ سره کابل ته راغې. ولے دلته د هغهٔ سترګے اوغړېدے. هغهٔ ته اوس معلومه شوه چه کوم اور د ډېرے مودے نه ورو ورو ټوکېده و هغه اوس بلے لمبے شوے وے چار چاپېره ټول ملک هغهٔ خپل ځان ته بلوه اوليدهٔ. دغه وخت د بادشاه او وزير دواړو نه بنه پيوند خطا شو. محمود د فتح خان په ملګرتيا کښې د قندهار فتح کولو نه پس د کابل په نيت راروان شوے وو. شاه زمان د اميرانو سره د ډېرو جرګو مرکو نه پس د محمود مقابلے ته ډېرش زره فوځ اوليږلو. د محمود د فوځ کمان د فتح خان عوندے قابل سړی په لاس کښې وو. دواړه فوځونه د سراسپ، په مقام مخامخ شول. په دے موقع فتح خان بيا خپل قابلتوب ظاهر کړو. هغهٔ د شاه زمان د فوځ يو لوئ سردار احمد خان نورزے په خپله پره راواړولو. او د جنګ شروع کېدو نه اول احمد خان د خپل فوځ سره د محمود په پره شو. شاه زمان چه د دے نه خبر شو نو ويره پرے غالبه شوه. په دے ويره کښې د هغهٔ د لوئ وزير وفادار خان هم لاس وو. نتيجه دا شوه چه شاه زمان د جنګ نه بغير کابل ته اوتښتېد و او د هغهٔ بے مالکه فوځ ټول تار په تار شو. محمود د دے موقع نه فائدهٔ واخسته. سمدستي د خپل فوځ سره د شاه زمان په تعاقب کښې کابل ته راروان

شو. او د ځان نه ئې وړاندے دوه زره فوځ د فتح خان په کمان کښې د شاه زمان د نيولو په غرض اوليږلو.

شاه زمان په کابل کښې اتاړ نهٔ شو. او د خپل وزير وفادار خان په ملګرتيا کښې د شنوارو علاقې ته راغې. او د "ملا عاشق" په قلا کښې ټيکاؤ شو. ملا عاشق خو په ظاهره کښې د شاه زمان او د هغهٔ د ملګرو ډېر عزت او احترام اوکړو. ولے هغهٔ په کابل باندے د شاه محمود د قبضے نه خبر شوے وو. او دا ورته معلومه شوې وه چه د شاه زمان قسمت اوس زما لاس کښې دے. په شاه محمود باندے د ملازے اړولو په خيال ملا عاشق شاه زمانٔ ته سترګے خړے کړے او هغه ئې په خپله قلا کښې د ملګرو سره نظر بند کړو. شاه زمان چه په خپل ځان پوه شو نو ملا

عاشق ته ئے د پښتنو ننګ غیرت ور وړاندے کړو۔ ولے د ملا عاشق سترګے د حرص پړدو داسے بندے کړے وے چه د هغهٔ غوږ ونه د پښتو، ننګ، غیرت او د پښتون ولئ لفظونو اوریدلو ته تیار نهٔ وو۔ هغهٔ خپل سړی سمدستی کابل ته اولیږل۔ او شاه محمود ئے د شاه زمان د ګرفتارئ نه خبر کړو۔ شاه زمان ته چه د ملا عاشق دا بے ننګی معلومه شوه نو هغهٔ په خپل قسمت صبر اوکړو او په ډیر استقلال د دا تلونکو واقعاتو په انتظار کښے کښیناست۔ او هم د ملا عاشق د قید په دوران کښے ئے د قلا په یو دیوال کښے مشهور کوهِ نور او خپل نور جواهرات پټ کړل۔ دا جواهرات وروستو شاه شجاع د خپلے بادشاهئ په زمانه کښے ترلاسه کړل۔

د ملا عاشق بے ننګئ د محمود کار ډیر اسان کړو۔ او هغه ئے د یو لوئے غم نه خلاص کړو۔ څه وخت چه هغهٔ د شاه زمان د ګرفتارئ نه خبر شونو سمدستی ئے د فتح خان دیو ورور اسد خان په مشرئ کښے یوه فوځی دسته د شاه زمان او د هغهٔ د ملګرو د راوستلو په غرض د ملا عاشق قلا ته اولیږله۔ چه یو جراح هم ورسره وو۔ د دے فوځئ د ستے په نګرانئ کښے شاه زمان او د هغهٔ ملګری رارون کړے شول۔ او کابل ته لا رارسیدلی نهٔ وو چه د شاه زمان سترګے ړندے کړے شوے وے۔ دا ړوند او معزول بادشاه د یو قیدی په حیثیت په بالاحصار کښے وردننه کړے شو۔ او د هغهٔ وزیر وفادار خان د خپلو نورو دوؤ ورونو سره اووژلے شو۔

شاه زمان په کال سنه ۱۸۰۰ء کښے ړوند او قید شو۔ او تر هغه وخته قید وو چه د هغهٔ ورور شاه شجاع په کال سنه ۱۸۰۳ء کښے په شاه محمود فتحه حاصله کړه۔ د غه وخت شاه زمان هم د قید نه خلاص شو۔ ولے چه شاه شجاع بیا د محمود د لاسه شکست اوموند او د ملک نه په وتلو مجبور شو نو د غه وخت شاه زمان هم د هغهٔ سره لدهیانے ته راغے۔ او باقی عمر ئے د انګریزانو د وظیفه خوار په ډول تیر کړو۔

شاه زمان یو ډیر زړور او تورزن بادشاه وو۔ عقلمند هم وو۔ ولے د هغهٔ غټ نقص دا وو چه هغهٔ دا حقیقت د اول نه معلوم نهٔ کړے شو چه په پښتنو بادشاهی کول د با اقتداره سردارانو د امداد وتعاون نه بغیر نهٔ شی کیدے۔ هغهٔ خپل ځان بالکل خود مختاره او د قبائیلو سرداران ئے په خپل خیال کښے بالکل بے وسه

بې دسته کړل. د بادشاهۍ په حقله دهغه دا فعل د پښتنو د عامې نظرې نه بيخي مخالف وو. او دا دهغه لويه غلطي وه. دهغه د سلطنت د زوال لوئې باعث دهغه وزير وفادارخان وو. ددهٔ په لمسون شاه زمان د پښتنو قبائيلو ډير نوميالي سرداران اووژل. او دغه شان ئې د پښتنو په مينځ کښې د بې اتفاقۍ اور بل کړو. دا هم ددې وزير د لمسون نتيجه وه چه شاه زمان د محمد زو د اقتدار په ختمولو کښې ګډيا شو. د شاه زمان دا کار د پښتنو په نظر کښې ځکه قابل نفرت وو چه څه رنګ پښتنو په ابداليانو کښې د سدوزو قبيله د بادشاهۍ دپاره مستحقه ګڼله. دغه رنګ ئې په بارک زو کښې محمد زي د وزارت او لويو لويو عهدو حقدار ګڼل. ددې نقائصو باوجود شاه زمان يو ډير مستعد او د کار بادشاه وو. د انګريزانو هم دهغهٔ نه ويره کيدله. او دهغه په لاره کښې ئې دمشکلاتو په پيدا کولو کښې څه کمې نهٔ کولو. او که د وفادار خان په ځائې د دهغه وزير بل څوک يو نيک نيته سردار وې نو ممکنه ده چه د ددهٔ سلطنت د پلار په نسبت زياته ترقي کړې وې. او زيات پائيدار او مستحکم ثابت شوې وې. دا بد قسمته بادشاه او ددهٔ ورور شاه شجاع د تيمورشاه د ټولو ځامنو په نسبت په پښتنو کښې با لخصوص په مشرقي پښتنو کښې په ډير احترام او عزت ياديږي. دواړه ورونړه د داسې شاهانه او درنو خويونو خاوندان وو. چه د اختيار او اقتدار په وخت کښې به ئې د خپلو دوستانو او مرستيالو په ډيرې فراخدلۍ نمانځنه او پالنه کوله. او د مصيبت او بد بختۍ په ورځو کښې ئې د مزاج استقلال و استقامت نهٔ وو پريښې.

# شاه محمود

د اووو کالو د سرګردانه ګرځیدلو نه پس شاه محمود په کال سنه ۱۸۰۱ء کښې د کابل په تخت کښیناست ۔ او د خپلو مرستیالو ځ ډیره نمانځنه اوکړه ۔ سردار فتح خان له ئې د شاه دوست خطاب ورکړو ۔ او د علی زو سردار اکرم خان ئې لوئ وزیر کړو ۔ او د خپل حکومت ټول اختیارات ئې د دے دواړو سردارانو ته حواله کړل ۔ او په خپله په عیش و عشرت کښې بوخت شو ۔ شاه شجاع د غه وخت په پېښور کښې وو ۔ هغهٔ چه د خپل ورور د دے مصیبت نه خبر شو نو سمد ستی ئې په پېښور کښې د خپلے بادشاهئ اعلان اوکړو ۔ او د خوا ؤشا علاقے د پښتنو قبائیلو سرداران ئې راغونډ کړل ۔ او د هغوی په مرسته ئې د افریدو او نورو پښتنو قبائیلو نه یو لوئ لښکر مرتب کړو ۔ او په کابل باندے د حملے په غرض روان شو ۔ محمود هم د دهٔ مقابلے ته د فتح خان په کمان کښې درے زره فوځ اولیږلو ۔ دواړه فوځونه په یو تنګ میدان کښې مخامخ شول ۔ د شجاع فوځ طاقت په لس زره قبائیلی لښکر مشتمل وو ۔ په اوله حمله کښې خو دے قبائیلی فوځ ګټه اوکړه ۔ ولے دغه وخت د خپل عادت مطابق داخلق په لوټ کښې مشغول شول ۔ فتح خان د دے موقع نه فائده واخسته او په دوی ئې بیا حمله اوکړه ۔ او د دوی ګټه ئې په بائیلات بدله کړه ۔ د شجاع ټول لښکر تار په تار شو ۔ شجاع هم او تښتید او د افریدو علاقے ته راغے ۔ په پېښور هم د محمود قبضه شوه ۔

شاه محمود په شجاع خو بریالے شو ولے یو بل لوئ مصیبت ورته پیښ شو ۔ په افغانستان کښې د پښتنو اوله بادشاهي د غلجي قام مشر میرویس قائمه کړې وه ۔ د احمد شاه ابدالي په بادشاه کیدو اګر که حکومت د غلجیو د لاسه وتلے وو ۔ ولے د غلجیو د بادشاهي ټبر عزت و احترام په عام اولس کښې هغه شان قائم وو ۔ او د دے عزت په اعتراف کښې احمد شاه د دوئ د پاره یو لوئ حاجب مقرر کړے وو ۔ او دا حاجب به د هغهٔ د جانشینو د لور نه هم ورکیدے شو ۔ د شاه محمود د حکومت په وخت کښې د غلجي

قبائیلو مشر عبدالرحیم هوتک وو۔ چه درانیان په خپلو کښې اونګیدل۔ نو د غلجیانو هم بادشاهئ ته بیا خوا او غزیدله۔ او چه د شاه زمان په ځائے شاه محمود بادشاه شو نو د غه وخت دوئ هم خپلے بادشاهئ ته بیا لیواله شول۔ د محمود د تخت نشینئ په موقع ډیر غلجي سرداران په کابل کښې اتفاقاً موجود وو۔ دوئ ته چه د محمود د بادشاهئ کمزورتیا معلومه شوه۔ نو د خپلے بادشاهئ اراده ئے اوکړه۔ د دے کار دپاره هڅوی عبدالرحیم هوتک خوښ کړو۔ عبدالرحیم خو اول دے جنجال ته غاړه نه کیښودله۔ ولے بیا د قبیلے د مشرانو په وینا رضا شو۔ په دے مقصد د غلجیو ټولے قبیلے متفق شوے۔ او بغاوت ته تیارے شوے۔ او یو لوئے لښکر ئے تیار کړو۔

غلجیانو خپل لښکر دوه برخے کړو۔ یوه برخه لښکرے د قندهار درانیانو دابیسارولو په غرض د قندهار په لور اولیږلو۔ او بل لښکر د غزنی په لور روان شو۔ د غزنی ګورنر د غلجیانو مقابله اوکړه۔ ولے شکست ئے اوموند او قلا بند شو۔ غلجیانو ښار محاصره کړو۔ ولے بیا ئے د لته څه لږ شان لښکر پریښنو او د شیلګر او زومل په لاره لهوګر ته راغلل۔ او د هغه ځائے نه ئے د کابل مخه اونیوله۔ د غه وخت په کابل کښې د شاه محمود سره ډیر لږ فوځ وو۔ ولے په دے موقع درانیانو خپل اختلافات ختم کړل او د غلجیانو مقابلے ته تیار شول۔ په دے ورځو کښې په درانی سردارانو کښې د قابلیت په لحاظ سره د سرسړے شیر محمد خان وو۔ چه د احمد شاه وزیراعظم شاه ولی خان ځوئے او د شاه محمود د لاسه په کابل کښې قید وو۔ لیکن په دے تنګسه کښې شاه محمود هغه د قید نه راواښکلو۔ او د فوځ کمان ئے هغه ته حواله کړو۔ د غلجیانو او ابدالیانو مقابله د "سجاون" په مقام اوشوه۔ د غلجیانو لښکر په سرخوزیات وو۔ ولے نه په کښې څه ترتیب وو۔ او نه د جنګ په چل پوهیده۔ داکثرو سره وسلے هم نه وے۔ د دوئ په مقابله کښې شاهی فوځ درے حصے شو۔ او د فوځ په مخکښے ئے فرنګی توپے اولګولے۔ غلجیانو په ډیرے بے تمیزئ حمله اوکړه۔ او د خپل کثرت په وجه ئے د درانیانو فوځ په شا کړو۔ ولے د درانیانو د ګس او ښی اړخ فوځونو دوئ راګیر کړل۔ او ښه ئے اووهل۔ غلجیانو تیښته اوکړه۔ او د خپل قام په یوے قلا کښې ورننوتل۔ د شپے غلجیانو ته نور کومک هم په لاس راغے۔ سحر دوئ په بله لار کابل ته روان شول۔ او د ماښام پورے شاهی قلا ته اورسیدل۔ چه د کابل نه دیو څو میلو په فاصله وه۔ که غلجیانو د غه وخت په ښار حمله کړے وے نو ښار به

ئې تر لاسه کړې وو۔ ولې هغوی د شپې د خوا او شا په کلیو کښې په لوټ لاس پورې کړو۔ ټوله شپه ئې په لوټ ځان ستړې کړو۔ او چه سحر کیده نو دغه وخت د درانیانو فوځ د دوئ مقابلې ته بیا رارسیدلې وو۔

چه جنګ شروع شو۔ نو د غلجیانو هرې قبیلې په خپله خپله خوښه او په خپله خپله څخه د درانیانو په لښکر حملې شروع کړې۔ د دوئ په حملو کښې نه څه ترتیب وو او نه تنظیم۔ دغه وخت درانیانو دوئ ته بیا شدید شکست ورکړو۔ د غلجیانو درې زره سړی اووژلې شول۔ په کال سنه ۱۸۰۲ء کښې یو ځل بیا غلجیانو بغاوت اوکړو۔ دا ځل دوئ دوړاندې په شان په بې تمیزئ نه جنګیدل۔ دا پیره د غلجیانو فوځ په پنځوس زره سړو مشتمل وو۔ په دې موقع د غلجیانو او درانیانو ترمینځه درې جنګونه اوشول۔ او په هر جنګ کښې غلجیانو تیښته اوکړه۔ د دوئ اخری معرکه په ۱۱ مئ سنه ۱۸۰۲ء د ملا شاهی په مقام اوشوه۔ دا ډیر د لړی بری جنګ وو۔ په دې جنګ کښې غلجیانو فاشه ماتې اوموندله۔ او د دې نه پس د غلجیانو د دماغ نه د بادشاهئ سودا او وتله۔ او د درانیانو بادشاهئ ته ئې ګواښیدل بس کړل۔

د پښتنو د دې خانه جنګئ او بې اتفاقئ په وجه د درانیانو په ټول سلطنت کښې د بد نظمئ دور دوره شروع شوه۔ اوزبکو هم د دې نه فائده واخسته۔ او په جیحون راپورې وتل۔ په ملک کښې ئې اړې ګړې جوړې کړو۔ فتح خان د دوئ مقابلې ته فوځونه اولیږل۔ د بلخ په مقام جنګ اوشو۔ چه په هغې کښې اوزبکو تیښته اوکړه۔ ایرانیانو هم د دې بد نظمئ نه فائده واخستله۔ او په ایرانی خراسان ئې حمله اوکړه۔ مشهد او نیشاپور ئې په خپل سلطنت کښې شامل کړل۔ په دې دول بلوچستان هم د درانیانو د سلطنت نه ځان اوشلولو۔ په دې اړی ګړی کښې شجاع یو ځل بیا قسمت ازمائی اوکړه۔ د افریدو قبائیلو نه ئې لس زره لښکر جمع کړو۔ او په پېښور ئې چغه اووهستله۔ ولې د شاه محمود د فوځونو نه ئې بد بد شکست او موند۔ ډیر افریدی په دې جنګ کښې اووژلې شول۔ په خپله شجاع په ډیر کړاؤ خپل ځان د افریدو علاقې ته اووېستلو۔ او په چوره کښې ئې استوګنه اختیار کړه۔ دا ځل د شجاع حالت ډیر مایوس کن وو۔ په ظاهره کښې د هغه د کامیابئ څه طمع نه وه۔ په دې ورځو کښې د هغه ګذران د خپلو جواهراتو په خرڅولو وو۔ لیکن ډیر زر هغه ته بیا موقع په لاس ورغله۔

وړاندے وئيلے شوی دی چه د تخت نشينئ نه پس محمود د عياشئ ژوند اختيار کړے وو - او د ټول ملک واک اختيار ئے فتح خان بارک زی او اکرم خان علی زی ته سپارلے وو - دا دواړه سرداران په خپل خپل ځائے ډير درانهٔ پښتانهٔ وو - ليکن په خپلو کښے وران وو - په دے وجه بادشاه اکرم خان په کابل کښے پرے ښو د او فتح خان ئے د مشرقی او سويلی صوبو د انتظام په غرض اوليږلو - چنانچه فتح خان د قندهار ، پيښور ، کوهاټ ، بنوں او وزيرو د علاقے نه ماليه ټوله کړه - او بيا قندهار ته راغے -

چه فتح خان پيښور ته راغے نو د شجاع د پاره دا فريدو په علاقه کښے استوگنه گرانه شوه - د دغه وجه وه چه هغه د افريدو د علاقے نه د کاکړو علاقے ته لاړ - دغه وخت شجاع او د هغهٔ ملگری په ډيرے تنگسيا کښے وو - شجاع ته خپلو ملگرو د يوے قافلے د لوټلو صلاح ورکړه چه د کوشټے په خوا کښے ديره شوی وه - شجاع د ډيرے مجبوری له کبله دا قافله اولوټله - ولے سوداگرانو ته ئے د خپل خپل رقم رسيدونه ورکړل - او ورته ئے اووے چه د بادشاه کيدو نه پس به دا رقم بيا درکوم - چنانچه هغهٔ دا وعده پوره هم کړه - او کومو کومو سوداگرانو چه هغهٔ ته رسيدونه پيش کړل - هغوی ته ئے د خپل خپل رقم نه زيات رقمونه ورکړل - شجاع چه د قافلے په لوټلو کوم رقم ترلاسه کړو - په هغے ئے يو بل فوځ تيار کړو - او په قندهار ئے حمله اوکړه - ولے د هغهٔ دا حمله بهم خوشی لاړه - د دے نه پس شجاع بيا افريدو ته راغے -

په دغه ورځو کښے د فتح خان حريف اکرم خان علی زے مړ شو - لوئے وزارت اگر چه د شير محمد خان حق وو - چه د احمد شاه د وزير اعظم شاه ولی خان ځوئے او يو قابل پښتون وو - او د غلجيانو بغاوت هم د دهٔ په قابلتوب رفع شوے وو - ولے شاه محمود د لوئے وزارت عهده فتح خان ته ورکړه - په دے خبره شير محمد خان په زړهٔ کښے د شاه محمود نه ناراض وو - هم په دغه ورځو کښے د سُنيانو او د کابل د قزلباشو (چه د عقيدے له مخه شيعه وو) ترمينځه خانه جنگی شروع شوه - او د دے خانه جنگئ فائده شاه شجاع ته اوو رسيده -

قزلباش د شاه محمود محافظ فوځ وو - د محمود د ذاتی حفاظت دارومدار او په دارالخلافه کښے د امن و امان قيام د دوئ په ذمه وو - شاه محمود د پښتنو د خويونو نه بيخی خالی وو - د هغهٔ ناسته پاسته او ټول تعلقات د دے قزلباشو سرهٔ نو

د سردارانو سره وو - د دے کبله یو طرف ته د قزلباشو په اقتدار او اثر رسوخ کښے بے حده زیاتے اوشو - او په بل لور د دوئ خویونو ، خصلتونو ، ژبے ، تهذیب وتمدن په بادشاه او د هغهٔ په پښتنو درباری امیرانو داسے اثر اوکړو چه د هغوی نه ئے د پښتون ولئ ټول خصوصیات هیرکړل - د شاه محمود د بے حده شراب نوشئ او عیاشئ وجه هم د دے قزلباشو اثر او صحبت وو -

دا قزلباش د بادشاه د مهربانئ په وجه دومره مست وو چه په بازارونو کښے به ئے د پښتنو او عامو خلقو سره ډیر سپک سلوک کولو - او د شرابو په نشه کښے به ئے د عام اولس په عزت او ناموس هم صرفه نهٔ کوله - عام خلق د دوئ د روئے او سلوک نه ډیر تنګ وو - او بادشاه ته به ئے شکایتونه کول - ولے چونکه د خپل حفاظت د پاره د هغوی د مرستے ممنون وو نو د هغوی په دے ټولو بد اخلاقیو او بے اعتدالیو به ئے چشم پوشی کوله - او د خلقو په شکایتونو به ئے غوږ نهٔ ګرولو - قزلباش چونکه مذهبًا شیعه او عام اولس سنیان وو - نو د دے نه ورو ورو د شیعه سنی خیال پیدا شو - او په خلقو کښے دا تاثر قائم شو چه بادشاه د بے دینو او ګمراهانو مرسته کوی - د قزلباشو د ظلمونو او بے اعتدالیو او د بادشاه له خوا د هغوی د مرستے خبرے د کورونو او کوټو نو نه چرو او جماتونو نه اووتلے - او عام خلقو په جار د دوئ مخالفت شروع کړو - د اولس په لمسون او پارولو کښے د بادشاه د څښئ خپلو سردارانو چه سرغنه ئے شیر محمدخان وو هم لویه برخه وه -

په دغه زمانه کښے په کابل کښے سید احمد نوے یو لوئے عالم اوسیدهٔ - دا سړے د میر واعظ په نام مشهور وو - او د خپلے پرهیزګاری او دین دارئ په وجه په اولس کښے د لوئے احترام خاوند وو - په حق وئیلو کښے بے باکه او زړور وو - چه د خلقو شکایتونه زیات شول نو میر واعظ په خپله بادشاه د قزلباشو د بے اعتدالیو نه خبرکړو - ولے بادشاه دهٔ په وینا هم څهٔ توجه او نهٔ کړه - په دے خبره د خلقو خفګان نور هم زیات شو - په دے ورځو کښے د یو سنی د لاسه یو شیعه اووژلے شو - او د هغهٔ په قصاص کښے هغه پهانسی شو - سنیانو د هغهٔ جنازه په یو لوئے جلوس کښے روانه کړه - ولے قزلباشو په دے جلوس ډزے اوکړے - او د میر واعظ کور ئے اولوټلو - په دے واقعاتو د سنیانو زغم تمام شو - او په قزلباشو ئے حملے شروع کړے - د هغوی کورونه ئے اولوټل او ډیر ئے په کښے مړهٔ کړل - د غه شان د سنیانو او شیعه ګانو ترمینځه په ښار کښے خانه جنګی شروع

بشوه ـ یله ورځ د خواخوشا کیو نه هم ډیر خلق د سنیانو مدد ته راورسیدهٔ ـ او هله ګله ډیره زیاته شوه ـ په دے هله ګله کښے شیر محمد خان شجاع ته کابل ته دراتلو دعوت ورلیږلے وو ـ او هغه په ډیرے تادئ کابل ته راروان وو ـ شاه محمود ته دا معلومه وه چه دا اور شیر محمد خان لګولے دے ـ نو د هغهٔ د ګرفتارئ کوشش ئے اوکړو لیکن هغه هم په ځان پوهه وو ـ او د کابل نه تښتیدلے وو ـ

میر واعظ د شیر محمد خان ډیر دوست وو ـ چه هغهٔ د کابل نه اوتښتیدهٔ نو میر واعظ خلقو ته اووے چه د قزلباشو دا ټوله مستی د بادشاه د سرپرستئ نتیجه ده ـ په دے خبره فساد دومره زیات شو چه بادشاه ئے بے وسه کړو ـ په دغه وخت کښے فتح خان په قندهار کښے وو ـ د کابل اولس په ټولو لارو قبضه اوکړه ـ او د شجاع او شیر محمد خان په انتظار کښے کښیناستل ـ اخر شجاع په ۱۲ ر جولائی سنه ۱۸۰۳ء کښے د شیر محمد خان په ملګرتیا کښے کابل ته راورسید ـ او د شیر محمد خان په مشوره د فتح خان د مقابلے په غرض د ښار نه بهر ډیره شو ـ

درے ورځے پس فتح خان راورسید ـ د شجاع او فتح خان د فوځونو مقابله اوشوه ـ ولے د فتح خان د فوځ لویو لویو سردارانو په پټه د شجاع سره لاره اونیوله. او عین په تود جنګ کښے شجاع ته واوړیدل ـ فتح خان چه په ډاګه پاتے شو نو هغهٔ هم پښے اوویستلے ـ او قندهار ته لاړ ـ د دے فتح نه پس بله ورځ شجاع مرزا په شاهانه طریقه کابل ته ورد ننه شو ـ او د شاه شجاع په نامه تخت نشین شو ـ د شاه شجاع دا اراده وه چه د زمان شاه په بدل کښے د شاه محمود نه هم سترګے اوباسی ـ ولے د شیر محمد خان او د خپل روند ورور شاه زمان په وینا ئے دا اراده پریښودله. او صرف په بالا حصار کښے ئے د هغهٔ په قیدولو اکتفا اوکړه ـ

# شاه شجاع

د شاه محمود په ځای شجاع بادشاه شو. ولې د ده په مخکښې ډیرې کشالې وې. د بادشاهۍ ټولې تار په تار واګې چه د طاقتورو امیرانو په لاس کښې وې یو ځای ته راغونډول د شجاع د طاقت او لیاقت نه بهر خبره وه. هسې خو شاه شجاع د درنو خویونو خاوندوو. ولې نه خو په دغه کښې د خپل نیکه احمد شاه غوندې لیاقت وو چه د پښتنو دا سرکښ سرداران ئې په خپل موټي کښې نیولې وې او نه ورسره داسې وسیلې وې چه هغه ئې په خپلو پښو اودریدلې وې. شجاع ته بادشاهي د شیرمحمد خان په مرسته حاصله شوې وه. نو دا قدرتي او مناسب خبره وه چه هغه به اوس لوئې وزیر کیده. دا سړې ډیر زړور، عالم فاضل او لوئې سیاستدان وو. د هر چا سره به ئې ډیر ښه سلوک کولو. هر څوک به ورله په اسانه رسیدلې شو. د لوئې سینې او لوئې زغم خاوند وو. ډیر حلیمه دوست، د پښتنولۍ په ادابو عامل او په خپله جامه او ژوند کښې ډیر ساده او بې تکلفه وو. که څه شاه شجاع هغه له پرانستې واګې ورکړې وې. نو دا توقع کیدې شوه چه د حکومت داورانه ماشوره به شیر محمد خان په خپل عقل او تدبر ډیره زر سمه کړې وه. او د شاه شجاع په حکومت کښې به امن وامان قائم شوې وو. ولې د بد قسمتۍ نه شاه شجاع د شیرمحمد خان دا لوئې اقتدار برداشت نه کړې شو. او ډیر زر ئې د هغه سره اړوپیچ شروع کړه.

د بادشاه کیدو نه پس اول کار د شجاع دا وو چه خپل ورور زمان شاه ئې د قید نه راخلاص کړو. او ملا عاشق ئې چه د هغه د بې ننګۍ او فریب په وجه دوی ته دا دومره ګړاو او نقصان رسیدلې وو. او وژلو. د دې نه سیوا هغه نورچا ته څه سزا ورنه کړه.

د شجاع د تخت نشینۍ په وخت کښې په قندهار کښې مرزا کامران چه د شاه محمود ځوئې وو. حکمران وو. شجاع د خپل لوئې وزیر شیر محمد خان په ملګرتیا کښې د یو فوځ سره په

قندهار حمله اوکړه - دغه وخت د بارک زو مشر فتح خان هم د کامران سره په قندهار کښې موجود وو - کامران د فتح خان په مشوره د شجاع مقابله او نۀ کړه - او هرات ته په تيښته لاړ - فتح خان د دوغ او صلح په غرض د شجاع په دربار کښې حاضر شو - ولې شجاع په دے موقع لويه غلطي اوکړه - هغۀ د فتح خان سره د هغۀ د شان سره مناسب سلوک اونۀ کړو - او هغه ئے په خپل مغرورانه سلوک په خپلو راتللو ستومانه کړو - که چرے شجاع داسے نۀ وے کړے او فتح خان ئے په اعتماد کښې اخستے وے نو وروستو به د فتح خان د لاسه شجاع ته دومره تکليفونه نۀ وو ورپيښ شوی - فتح خان چه د شجاع د سلوک نه ناراض شو نو هغه خپل قلعے (ګرشک) ته په پټه اوتښتيده - او د دے نه پس ئے د شجاع برخلاف داسے منصوبے تيارے کړے چه شجاع ئے در په دريکه کړو -

شجاع قندهار خپل وراره قيصر مرزا ته حواله کړو - او احمد خان نورزے ئے د هغۀ وزير مقرر کړو - دا احمد خان هغه سړے وو چه د زمان شاه نه سره د خپله فوځه شاه محمود ته تښتيدلے وو - ليکن چونکه د شجاع په راتلو کښې هم دۀ لوئے مدد کړے وو - نو شجاع معاف کړے وو - د قندهار د فيصلے نه پس شجاع د ديرش زره فوځ سره پيښور ته راغے او د کشمير او د سنده د صوبو د تسخير په فکر کښې لګيا وو - دغه وخت کښې د خپل وراره قيصر مرزا د بغاوت نه خبر شو چه په قندهار کښې ئے کړے وو - دے بغاوت ته قيصر مرزا د هغه فتح خان په لمسون تيار شوے وو - چه ذکرئے پورته شوے دے - قيصر مرزا د فتح خان په لمسه خپل وزير احمد خان نورزے قيد کړو - او د فتح خان سره د کابل د حملے په منصوبه کښې لګيا شو - او کوم وخت چه د کابل په لور روانيدو نو هغه خپل وزير (احمد خان) ئے بيا د قيد نه راوسکلو او د قندهار حکومت ئے ورله حواله کړو - ليکن احمد خان په دے خپلے بے عزتئ داسے خفه شوے وو چه کوم وخت قيصر مرزا کابل ته روان شو - نو هغه په چپه خله کامران مرزا را اوغوښتو او قندهار ئے ورله حواله کړو -

شاه شجاع چه په کابل باندے د قيصر مرزا د حملے نه خبر شو نو په ډيرے تندئ کابل ته راغے - قيصر مرزا ته ئے شکست ورکړو - او بيرته پيښور ته راغے - او د سنده د حملے په تابيا کښې لګيا وو - چه په قندهار باندے د قيصر مرزا د حملے نه خبر شو - شاه شجاع بيا د قندهار په نيت روان شو - قيصر مرزا ته ئے شکست ورکړو - فتح خان هرات ته اوتښتيد او قيصر مرزا د شجاع نه معافي اوغوښته - شجاع هغه

معاف کړو۔ او په قندهارے بیا حاکم کړو۔ شاه شجاع ته هم هغه حالات وړپیښ شول. کوم چه د دهٔ نه وړاندے شاه زمان ته وړپیښ شوی وو۔

د قندهار د کشالے نه پس شجاع په سنده حمله اوکړه ۔ د سنده تالپوری سردارانو د پینځنو د خانه جنګئ په وجه د ډیرو کلونو خراج نهٔ وو ورکړے ۔ او شجاع ته ئے هم د ورکولو نیت نهٔ وو۔ ولے چه شجاع د دیرش زره لښکر سره په سنده ور وخوت ۔ نو تالپوری سردارانو هم صلح په جنګ غوره کړه۔ شجاع ته ئے درے نیم لکه پونډه خراج ورکړو۔ او هغه کابل ته ستون شو۔

په کومو ورځو کښے چه شاه شجاع په پیښور کښے د کشمیر د لام په فکر کښے لګیا وو۔ په دغه ورځو کښے یو ځل بیا فتح خان قیصر مرزا د بغاوت دپاره اولمسولو۔ ولے دا ځل قیصر مرزا په خپل خیال کښے په فتح خان چل اوکړو۔ هغه ئے د ،،ګرشک،، نه د صلاح مصلحت په عرض قندهار ته راوبللو۔ او چه فتح خان قندهار ته راغے نو قیصر مرزا هغه قید کړو ۔ لیکن د فتح خان غوندے یو هوښیار او زړور سردار د پاره د قیصر مرزا دوکه کول څهٔ ګران نهٔ وو۔ هغه په دے خپل قید قطعی وارخطا نهٔ شو۔ بلکه قیصر مرزا ته ئے داسے د سبینبو اسمانونه جوړ کړل۔ چه دغهٔ سمدستی فتح خان پریښود او د کابل د حملے په عرض ئے هغه ،،ګرشک،، ته اولیږلو۔ چه ضروری انتظامات او بندوبست اوکړی۔ ولے د دے نه پس فتح خان په قیصر مرزا بے اعتباره شو۔ نو هغهٔ دا ځل د کامران مرزا سره غوږ نژدے کړهٔ ۔ کامران ئے د قندهار په حمله اوپارولو۔ کامران په قندهار حمله اوکړه۔ او کامیاب شو ۔ قیصر مرزا کابل ته په تیښته راغے۔ ولے چه شاه شجاع د دے واقعاتو نه خبر شو نو هغهٔ سمدستی په قندهار ور وخوت او کامران ئے هرات ته په تیښته مجبور کړو۔

شاه شجاع یو ځل بیا د قندهار نه د تالپوری سردارانو په تګل کښے سنده ته روان شو او چه سنده ته اورسید نو په کابل کښے د قیصر مرزا او شیر محمد خان د سازش نه خبر شو۔ قیصر مرزا چه د کابل نه قندهار ته راتښتیدلے وو نو دغه وخت شیر محمد خان په کابل کښے وو ۔ قیصر خود فتح خان په لمسون د بادشاهئ خوند اخستے وو نو دا ځل ئے د شیر محمد خان سره تار واخست ځکه چه شیر محمد خان هم د شجاع نه ناراض وو ۔ چه بادشاه سنده ته لاړ نو قیصر مرزا په کابل کښے د شیر محمد خان په صلاح د خپلے بادشاهئ اعلان اوکړو۔ او بیا د یو لوئے فوځ سره

ځ په پېښور حمله او بيا قبضه اوکړه. شاه شجاع چه په بسند ه کښې د دې واقعاتو نه خبر شو نو هغه سمدستي د پېښور په لور راروان شو او د رارسيد و سره ځ سمد ستي د باغيانو سره د صلح خبرې شروع کړې - ولې خبرې سراو نه نيوو. او فيصله تورې ته پاتې شوه.

په ۳ مارچ ۱۸۰۸ء کښې د دواړو فوځونو ترمينځه جنګ شروع شو. په اوله کښې خو د شير محمد خان تله درنه وه. شاهي فوځونو شکست اوموند. ليکن دغه وخت کښې شير محمد خان د خپله لږ شان فوځ سره د بادشاه د نيولو کوشش اوکړو. او په دې کوشش کښې په يوکولۍ وګيد او مړ شو. د شير محمد خان په مرګ د قيصر مرزا معامله خرابه شوه. هغه فوځونه تار په تار شول. او قيصر مرزا د شاهي فوځونو په لاس کښې ګرفتار شو. ولې شاه شجاع د اغل هم معاف کړو.

د شاه شجاع د بد بختۍ ورځې نه ختمېدلې. په کومو ورځو کښې چه فتح خان په قندهار کښې د شجاع برخلاف د قيصر مرزا سره په سازشونو کښې مصروف وو. په هغه ورځو کښې فتح خان شاه محمود نه د خپلو اعتباري نوکرانو په لاس داسې اوزار ليږلي وو. چه د هغ په مدد هغه د قيد خانې نه تښتېدلې شو. د فتح خان په مشوره شاه محمود قزلباش سپاهيان او افسران هم په خپل صلاح کښې شامل کړي وو. ځکه چه دا قزلباش د محمود د چوتي ياران وو. او کوم وخت چه شاه شجاع د کشمير د لام تيارې کوله په دغه ورځو کښې شاه محمود د قزلباشو په مرسته د قيد نه اوتښتېدلو. څو ورځې په يو قبر کښې پټ کښيناست او چه د بادشاه جاسوسان د هغه په تالاش کښې ناکامياب شول او غوغا سړه شوه نو بيا د فتح خان د کشر ورور دوست محمد خان په ملګرتيا کښې د بارک زو قلعه "ګرشک" ته اورسيده. او هلته ئې د بارک زو په کومک يو لوئ فوځ تيار کړو. او په قندهار ئې حمله او بيا قبضه اوکړه. مګر شاه شجاع چه د شير محمد خان او قيصر د کشالې نه اوزګار شو. نو سمدستي په شاه محمود پسې قندهار ته راغې. او د کال ۱۸۰۸ء په اخر کښې ئې هغه ته شکست ورکړو. په قندهار بيا د شجاع قبضه راغله. د دې نه پس شجاع د پيرنګيانو د يوې جرګې سره د خبرو اترو په غرض د قندهار نه د کابل په لار پېښور ته ته راروان شو.

په کومو ورځو کښې چه پښتانه په خپل مينځ کښې په سازشونو او کورنو جنګونو کښې ګېيا وو. دغه ورځو کښې انګريزانو په هندوستان کښې خپلې پښې مضبوطې کړې او

په خپلو ټولو مخالفینو غالب شوی وو۔ د غه وخت د دوئ په زړه کښې د پښتنو د طاقت نه هغه ویره نۀ وه پاتې شوې۔ کومه چه څه موده اګاهو د دوئ سره ملګری وه۔ په دې ورځو کښې پښتانۀ په خپل مینځ کښې په داسې ذلیلو سازشونو او کورنو جنګونو کښې ګیا وو۔ چه یواځې د دوئ خپل مضبوط حکومت ئې تباه نۀ کړو. بلکه د دې په وجه د انګریزانو اقتدار ته هم په هند کښې لار صفا شوه۔ په ۱۸۰۹ء کښې د انګریزانو او سیکانو د یوې معاهدې په نتیجه کښې د انګریزانو د سلطنت پوله د جمنا په ځاځ د ستلج سیند ته راورسیدله۔ او لدهیانه د انګریزانو سرحدی چاونۍ شوه۔ ولې په دغه ورځو کښې انګریزانو ته د خپل هندی سلطنت په حقله د افغانستان په لار د فرانس او روس زوره وره خطره راوړاندې شوی وه۔ د دې خطرې د تدارک په غرض انګریزانو د ایران پنجاب، سنده او افغانستان حکومتونو سره د معاهداتو په غرض جرګې لیږلې وې. دغه شان یوه جرګه د شاه شجاع سره د معاهده په غرض د مونټ سټوارټ ایلفنسټن په مشرۍ کښې پیښور ته هم راروانه وه۔

د دې جرګې سره د خبرو اترو په غرض شاه شجاع په ۱۰ جنوری ۱۸۰۹ء پیښور ته را اورسیدۀ۔ شاه شجاع د دې جرګې په باب کښې ډیر متردد وو۔ ځکه د هغۀ دا خواهش وو چه د جرګې سره په خپله ملاقات اوکړی۔ د دې جرګې د ارادو په حقله سیکانو او امیرانِ سنده هم د شاه شجاع شکونه زیات کړی وو۔ دا جرګه د راجپوتانې، سنده ډیره غازی خان او ډیره اسماعیل خان په لاره کوهاټ ته راورسیده۔ د کوهاټ د قیام په دوران کښې د دې جرګې مشر ښاغلي ایلفنسټن د کوهاټ د قدرتی ښائست، د خوشګوارې آب و هوا، باغونو او چینو نو ډیر متاثر شوې وو۔ او په ډیر ارت زړۀ ئې د دې ځائې ستائینه کړی وه۔ دا جرګه د ادم خیلو په دره را اووتله. او په فروری ۱۸۰۹ء کښې پیښور ته را اورسیدله۔ د غه وخت د شاه شجاع مشر وزیر اکرم خان وو۔ او د دۀ په ذریعه شاه شجاع د انګریزانو سره دا لوظ اوکړو:۔

(۱) که چرې کوم بیرونی طاقت د افغانستان په لاره په هند باندې حمله اوکړه. نو انګریزان به خپل فوځونه د حمله کوونکی مطالبې ته د افغانستان په مزکه وردننه کولے شی۔

(۲) شاه افغانستان به دا کوشش کوی چه د یورپ یا د یوې بلې بادشاهۍ فوځونه د هندوستان د حملې په نیت په خپل ملک کښې پرې نۀ بزدی۔

(۳) او نۀ به شاه شجاع د انګریزانو په ملک بلوسه کوی۔

دا سفیر د شاه شجاع په خدمت کښې د خپلې حاضرۍ واقعه په دې الفاظو کښې

بیانوی :-

بادشاه د محل په مینځنۍ محراب کښې په ځلیدونکی زرین تخت باندے ناست وو. د هغهٔ خط و خال او کړهٔ وړهٔ شاهانه او جاه و جلال نه ډک وو - د هغهٔ په تاج اولباس کښې جواهرات ځلیدل - او شغلے ترینه ختلے. ټول ایوان د تخت نه گیر چاپیره دم ختلی ولاړ وو .کوم وخت چه موږ بادشاه ته مخامخ شو نو موږ د خپلو سرونو نه ټوپئ لرے کړے او داداب په نیت مو سرونه ښکته کړل - بیا مو د دعا په غرض لاسونه اوچت کړل او ددےنپس دیوے ورے خپے په لور وړاندے شو - دغه وخت نقیب زموږ نومونه بغیر دځه ضروری اداب والقاب نه دوباره واخستل - او په اخرکښے ئے اوویل « بلادِ واظلم» دوئ د یورپ نه د عالی جاه په خدمت کښے د حاضریدو په غرض راغلی دی - په دے خبره بادشاه موږ ته په صاف او اوچت آواز کښے « هرکله راشه » اوویل - موږ بیا دعا اوکړه او د اول په شان مو سرونه ښکته کړل - شاه شجاع د خپل شخصیت په مقله داسے وائی :-

« شاه کابل ډیر ښکلے ، د شکل وشباهت نه شاهانه او د وضع قطع نه ډیرډیر او خوش مزاجه ښکاریدو - د هغهٔ خبرے بالکل شاهانه وے .»

په کال ۱۸۰۹ء کښے د شاه شجاع سلطنت په ظاهره کښے بالکل مستحکم ښکاریدو. تالپوری سرداران هغه په خراج ورکولو مجبور کړی وو - د شاه شجاع مضبوط اوطاقتو دښمن شیر محمد خان مړشوے وو - او په قندهار باندے هغه بیا تازه فتح موندلی اوقبضه کړی وه - او د خپل مشر وزیر اکرم خان په ماتحتۍ کښے ئے د کشمیر په لام یو لوئے فوځ لیږلے وو - په کشمیرکښے د شیر محمد خان ځوئے عطا محمد خان حکمران ووچه دغه وخت د شجاع نه سخت مخالف وو - په ظاهره کښے د خطرے هیڅ کومه خبره نهٔ وه - ولے د انګریزانو جرګه لا په پیښور کښے وه چه په قندهار باندے د محمود د دوباره حملے او قبضے خبر راورسید - په دے خبر شاه شجاع لږ شان پریشانه شو - ځکه چه د هغهٔ سره ډیو بل فوځ د مرتب کولو د پاره کافی دولت نهٔ وو - ولے هغه په دے خبره مطئین وو چه دکشمیر مهم به کامیاب شی - او چه دا فوځ بیرته راشی نو د دے په مرسته به د شاه محمود تابیا اوشی -

د بدقسمتۍ نه اکرم خان دکشمیر په مهم کښے کامیاب نهٔ شو - د هغهٔ ډیر فوځ تباه شو - او د ځه لږ شان فوځ سره چه په افریدو او غلجیانو مشتمل وو - پیښور ته

را اورسید. دغه وخت د شاه شجاع د پاره ډیر مشکلات پیښ شول. د نوی فوځ او درولو د پاره دولت پکار وو او هغه د شاه شجاع سره نهٔ وو. دهغهٔ وزیر اکرم خان ډیر دولتمند وو. او د شاه شجاع بیرىٔ ئے په اسانه روانولے شوه. ولے سره د دے چه اکرم خان یو بهادر، مخلص او زړور پښتون وو. او د شجاع خدمت ته هم تیار وو. لیکن په دولت ډیر مټین وو. هغهٔ د شجاع د پاره سر ورکولو ته خو تیار وؤ لیکن د زرو په ورکولو ئے زړهٔ نهٔ کیده. دغه وجه وه چه شاه شجاع په ډیر تکلیف څه نیم نیمگوړے فوځ تیار کړو. او د کابل په نیت روان شهٔ. دغه وخت د انگریزانو هغه جرگه هم د پیښور نه روانه شوه.

د انگریزانو دا جرگه د ۲۵، فروری ۱۸۰۹ء نه تر ۱۲، جون ۱۸۰۹ء پورے په پیښور کښے ایساره وه. په دے دوران کښے د جرگے ډیر دارومدار کیده. د څلور قیام په دوران کښے څه رنگ چه د دے جرگے مشر ښاغلے ایلفنسټن د کوهاټ د مناظرو د خوشگوار موسم او آب و هوا نه متأثر شوے وو. دغه شان د پیښور د باغونو، چمنونو او مناظرو هم متأثر کړے وو. دے سفیر د پیښور ښار د تجارتی رونق، په بازارونو کښے د خلقو د گڼے گوڼے، د هغوی د لباس، خوراک، تمدن او امروزه ژوندانه او خصلتونو په باب کښے په ډیر تفصیل سره خپل خیالات ظاهر کړی دی او په ډیر وشاندارو الفاظو کښے ئے د قدیم پیښور د تمدن نقشه راښکلی ده. د پیښور د روانیدو په دریمه ورځ دا جرگه هغه ځائے ته اورسیده چه هلته اوس د نوښار چاؤنۍ اباده ده. د دے ځائے د قدرتی نظارے نه هم سفیر او هم هغهٔ ملگری ډیر لطف اندوز شول. او د دے ځائے نه چه روان شول. نو څو ورځے پس حسن ابدال ته اورسیدل. د حسن ابدال مناظرو د سفیر په ذهن کښے د کوهاټ د مناظرو یاد بیا تازه کړو. دا مقام د مغل بادشاهانو په وخت کښے د کشمیر د تلو د پاره د هغوی د قیام یو منزل وو. د جرگے غړی دلته کښے ښهٔ په ارام او اسوده شول. او د دے ځائے نه د هندوستان په تکل روان شول. دا جرگه لا په حسن ابدال کښے وه چه دوئ ته د شاه شجاع د ناکامۍ خبر را اورسید

لکه چه پورته اوویلے شول شاه شجاع د شاه محمود د مقابلے په غرض د کابل په لور روان شو. لیکن د شاه شجاع د رسیدو نه اګاهو شاه محمود په کابل هم قبضه کړی وه. او د پیښور د حملے په تکل کښے وو. د نیملے په مقام شاه شجاع خپل کیمپ او لګولو. د دواړو ورونو ترمینځه جنګ شروع شو. د شاه محمود فوځ د شجاع په فوځ د

مخامخ نه حمله اوکړه. او د فتح خان فوځ په هغهٔ د ګس لورې نه. د دې دوه رُخه حملې په نتیجه کښې د شجاع فوځونو تیښته اوکړه. د هغهٔ وزیر اکرم خان اووژلے شو. او د شجاع ټول فوځ تار په تار شو. د شکست نه پس شجاع د افریدو علاقې ته راغ او د افریدو په غرونو کښې ئې پناه اونیوله. د غه وخت د شاه شجاع سره د خپل پلار نیکهٔ په ټول سلطنت او دولت کښې صرف یو کوه نور پاتې وو. شاه شجاع په خپله خو در په دیکه شو. ولې د هغهٔ حرم او د هغهٔ ورور شاه زمان په کشمیر کښې د پناه اخستلو په غرض د پېښور نه د راولپنډئ په لور راروان شول. او کوم وخت چه د انګریزانو هغه جرګه راولپنډئ ته راورسیده نو د غه وخت زمان شاه د شاهي حرم د بیګمانو سره هم راولپنډئ ته راورسیدهٔ. انګریزي جرګې د خپل مشر سفیر ایلفنسټن په ماتحتۍ کښې په دې موقع د زمان شاه سره هم ملاقات اوکړو. د دې ملاقات ذکر هغه داسې کوی:۔

"موږ چه د پېښور نه راولپنډئ ته راورسیدو نو د شاه شجاع د حرم بیګمات او د هغهٔ ورور زمان شاه هم په د غه ورځو کښې راولپنډئ ته راورسیدل. د زمان شاه شهرت په یو زمانه کښې د هند نه تر ایران پورې خور شوے وو. په دې وجه موږ د هغهٔ لیدو ته لیواله وو. د جولائ په لسم موږ د هغهٔ ملاقات ته لاړو. څه وخت چه موږ اورسیدو نو هغه په یو خیمه په یو کټ کښې ناست وو. په خیمه کښې قالینونه اولسې غوړیدلی وو. موږ هغهٔ ته تر هغه وخته مخامخ ولاړ وو. تر څو چه هغه موږ ته د کښیناستلو نهٔ وو وئیلی. د هغهٔ لباس ساده وو. ولې شکل و شباهت ئې شاهانه وو. شخصیت ئې ډیر جاذب او بارعب وو. د هغهٔ اواز او اوضاع و اطوار بیل و د شاه شجاع په شان وو. ولې د شجاع په نسبت هغه لږ شان دنګ او د مخ کړده ئې اوږده او باقاعده وه. ږیره ئې هم ډیره ښکلې وه. په ظاهره کښې هغه د ړند و په شان نهٔ ښکاریدو. اګرچه د هغهٔ سترګې زخم داره وې. ولې دومره تور پکښې پاتې وو چه د هغهٔ د مخ نور پرې قائم وو. د چا سره چه به هغهٔ خبرې کولې نو د خبرو کولو په وخت کښې به ئې د هغهٔ په لور سترګې هم اړولې. هغه لږ شان غمژن معلومیدهٔ. زموږ د کښیناستو نه پس یوه اوږده خاموشي شوه. اخر زمان شاه د شاه شجاع او د هغهٔ د شکست خبره راواچوله. او دا ئې اووئیل چه داسې بدبختي او زوال د بادشاهانو په قسمت لیک وی. (او د دې په مرسته کښې ئې) د حیرانوونکی

تاریخي انقلابا تو ذکرا وکړو۔ (ولې) که هغهٔ د ټولې ایشیا تاریخ (هم) سردوباره بیان کړې وې نو د قسمت د سرکښئ په مقله به هغهٔ د خپل ځان په نسبت غوره مثال بل کوم موندلې وو۔ (ځکه چه هغه اوس) روند او د تخت نه کوز کړې شوې او په یو داسې ملک کښې د شړونکی په حیثیت د استوګنې د پاره راغلې وو۔ چه هغه ملک د هغهٔ نیکهٔ فتح کړې او دوه ځله په خپله دهٔ هم فتح کړې وو۔"

شاه محمود اوس بیا د کابل حکمران شو۔ او د شاه شجاع د قسمت ستورې اولویدهٔ په کال سن۱۸۰۹ء کښې چه هغهٔ د شاه محمود نه شکست اوموند نو په اباسیند راپورې وتو۔ په دې غرض چه د انګریزا نو سره د خپل سلطنت په دوباره حاصلولو کښې څه خبرې اوکړی۔ دغه وخت کښې رنجیت سنګهـ په وزیرآباد کښې د دې ضلع په شوکولو کښې ګڼیا وو۔ رنجیت سنګهـ چه د شجاع د راتلو نه خبر شو نو د هغهٔ د ملاقات په غرض د هغهٔ مخ ته راروان شو۔ مقصد ئې دا وو چه که ممکن کیدې شی چه د درانیا نو یو شهزاده په خپله قبضه کښې اوساتی۔ د "ساهیوال" په مقام د شاه شجاع او رنجیت سنګهـ ملاقات اوشو۔ په دې ملاقات کښې رنجیت سنګهـ شجاع ته د ملتان او کشمیر په حاصلولو کښې د خپل مدد ډیرې طمع اسرې ورکړې۔ ولې په دې موقع د شجاع او رنجیت سنګهـ څه باقاعده معاهده اونهٔ شوه۔ ځکه چه شجاع ته د پیښور د قبائیلو نه د مرستې او کومک خبرونه راغلی وو۔ او د خپلې کامیابئ په مقله ئې څه لږه ډیره طمع پیدا شوی وه۔ دغه وجه وه چه د رنجیت سنګهـ په وعدو او پیشکشونو دهغه اونهٔ غلیدهٔ۔ او په باقاعده معاهده کولو کښې ئې جلدی اونهٔ کړه۔ د رنجیت سنګهـ اخلاص دهغهٔ ته مشکوک معلومیدهٔ۔ او په دې کښې شجاع حق به جانب وو۔

د رنجیت سنګهـ سره د جرګې نه پس شجاع اټک ته راغې۔ دلته کښې دهغهٔ د قبائیلو څه فوځ جمع کړو۔ د کشمیر نه هم هغهٔ ته لږ امداد په لاس ورغلو۔ د کشمیر ګورنر عطا محمد خان اګرکه د شاه شجاع مخالف وو۔ ولې هغهٔ د شاه محمود او فتح خان اطاعت هم نهٔ منلو۔ شجاع د دې نوی فوځ په مرسته په کال سن۱۸۱۰ء کښې کښې په پیښور حمله اوکړه۔ او ښارئې اونیوهٔ۔ ولې د هغهٔ دا قبضه عارضی ثابته شوه۔ ځکه چه داخل هغه د فتح خان دورور عظیم خان دلاسه د پیښور نه په تیښته مجبور شو۔ د دې نه پس شجاع د ډیره جاتو په لار ملتان ته لاړ۔ د ملتان ګورنر د هغهٔ د اطاعت نه بیخی انکار اوکړو۔ او د ښار دروازې ئې هم د هغهٔ د پاره بندې کړې۔

شجاع د دې ځائ نه بیا افریدو ته راغې او یو ځل بیا د افریدو قبائیلو یو لښکر د هغهٔ کومک ته تیار شو. د دې لښکر په کومک هغهٔ بیا په پېښور قبضه اوکړه. (۱۸۱۱ع) - لیکن دغه وخت د هغهٔ نه داسې خلق تاؤ وو چه د رنجیت سنګه په شان ئې د هغهٔ په ذات قبضه کول مد نظر وو. دغه وجه وه چه هغه په کال ۱۸۱۲ء کښې په پېښور کښې د اټک د ګورنر د لاسه ګرفتار شو. د دې ګرفتارئ غرض د شاه شجاع نه د "کوه نور" اخستل وو. چنانچه هغه ئې اول په اټک کښې قید او ساتلو. او دلته ئې په شجاع ډېر ناروا ظلمونه اوکړل. ولې کوهِ نور ئې ترلاسه نهٔ کړے شو. او بیا ئې کشمیر ته اولېږلو.

په کشمیر کښې د شیر محمد خان ځوئې عطا محمد خان ګورنر وو چه د شجاع او شاه محمود دواړو مخالف وو. شاه شجاع په کشمیر کښې د کال نه څه زیات نظر بند وو. د دې نه وړاندې په کال ۱۸۱۳ء کښې زمان شاه او د شاه شجاع حرم د رنجیت سنګه سره پناه نیولې وه. او د دې وجه دا وه چه په دغه کال په کشمیر باندې د شاه محمود او فتح خان د حملې اوازه خوره شوې وه. رنجیت سنګه یو ډېر چالاک او موقع شناس بنیادم وو. د خپلې فائدې یوه موقع به ئې هم نهٔ خطا کوله. په دغه وخت کښې هغهٔ د کشمیر د غرنیزې علاقو په تسخیر کښې لګیا وو. او د هغهٔ ځوئې کهړک سنګه "جمون" فتح کړے وو. د رنجیت سنګه د کشمیر د فتح کولو ډېر ارزومند وو. ولې د هغهٔ په زړهٔ کښې دوه غلا وې. د هغهٔ دا مقصد وو چه که په څه طریقه شاه شجاع د هغهٔ په قبضه کښې راشي نو یو خو به ترینه "کوه نور" حاصل کړي. او بل به د کشمیر د حصول په لړ کښې هم د شجاع د شخصیت او حیثیت نه فائده اوچته کړي. په دې غرض هغهٔ د شاه شجاع حرم ته دا اووئیل چه زهٔ به کشمیر د شاه شجاع د پاره فتحه کړم. که چرې د دې په بدل کښې شاه ماله "کوهِ نور" راکړي. ولې د شاه شجاع حرم د رنجیت سنګه په درغلئ پوهه وو. دغه وجه وه چه هغې خپل خاوند ته د رنجیت سنګه نه د محتاط اوسیدلو تاکید کړے وو.

چه په کشمیر د شاه محمود او فتح خان د حملې اوازه خوره شو نو رنجیت سنګه ته خپله یوه منصوبه (یعنې د کشمیر تسخیر) ناکامیابه ښکاره شوه. ولې هغهٔ د شاه شجاع په قبضه کولو کښې کامیاب شو. یعنې کوم وخت چه فتح خان په کشمیر قبضه اوکړه نو شاه شجاع د سیک کمانډار "محکم چند" په مشوره د شاه

محمود د قید په نسبت د رنجیت سنګه سره پناه اخستل غوره کړل. او په کال ۱۸۱۳ء کښې د رنجیت سنګه د یو معزز میلمه په حیثیت لاهور ته لاړې.

په ظاهره کښې خو شاه شجاع د رنجیت سنګه یو معزز او درون میلمه وو. ولې په حقیقت کښې هغه د رنجیت سنګه قیدی وو. رنجیت سنګه یو لوئ سیاسی لوبغاړے وو. او په ډیرو لوبو کښې ئې د شاه شجاع نه کار اخستل مد نظر وو. د ټولو نه اول د هغهٔ دا مقصد وو چه د شجاع د موجودګئ او حیثیت نه د کشمیر په فتحه کولو کښې فائده واخلی. هغهٔ په خپل زړهٔ کښې د پیښور په علاقه د شجاع د نوم په پرده کښې حکومت کولو ته هم لیواله وو. ځکه چه رنجیت سنګه د شاه شجاع او د وادئ پیښور د پښتنو قبائیلو د ښو تعلقاتو نه خبر وو. او هغهٔ ته دا معلومه وه چه د شاه محمود په نسبت د پیښور پښتانهٔ د شاه شجاع سره زیاته همدردی لری. او د دے نه علاوه د کوه نور د حصول ارمان هم د هغهٔ په زړهٔ ځکو نړارے لګولے.

د شاه شجاع په قبضه کولو کښې چه د رنجیت سنګه مد نظر کوم مقصد وو. په هغ کښې هغه پوره پوره کامیاب نهٔ شو. البته "کوهِ نور" هغهٔ ته په لاس ورغلو. د کوهِ نور د حصول په لړ کښې رنجیت سنګه د شاه شجاع سره ډیره شرمناکه طریقه اختیار کړه. هغه ئې قید کړو. او په هغهٔ ئې د ژوند ضروریات بند کړل. ولوږے تندے ئې پرے تیرے کړے. او خپل یو معزز میلمه چه د دهٔ په شخصی ضمانت او وعده ئې اعتبار کړے وو. او د دهٔ سره ئې پناه نیولی وه. په داسے طریقه مجبور کړو چه د خپل پلار نیکهٔ د سلطنت شان و شوکت هغه اخری نښخه (کوهِ نور) ئې هم د هغهٔ د لاس نه په ظلم او تر وړلو. (۱۸۱۵ء). ولې د شاه شجاع سره د "کوه نور" د حصول په سلسله کښې د رنجیت سنګه ناکردے د هغهٔ د ظلمونو یو ادنیٰ مثال وو. کوم ظلمونه چه وروستو د رنجیت سنګه او سیکانو د لاسه د ټولو پښتنو سره اوشول.

په کال ۱۸۱۶ء کښې د شاه شجاع حرم د رنجیت سنګه د نظربندئ نه په تیښته کښې کامیاب شو. او هغوی د لاهور نه لدهیانے ته لاړل. او د انګریزانو سره ئې پناه اونیوله. د دے نه څو میاشتے پس د خپلے قابلے او وفادارے بیګمے په هوښیارتیا شاه شجاع هم د رنجیت سنګه د قید نه په تیښته کښې کامیاب شو. مګر

دغه وخت د شاه شجاع په تیښته د رنجیت سنګه څه پرواه نهٔ وه۔ ځکه چه کهٔ کشمیر لا د دهٔ لاس ته نهٔ وو راغلے نو کوهِ نور خو ئے قبضه کړے وو۔

شاه شجاع چه د لاهور نه په تیښته کښے کامیاب شو نو د کشمیر د تسخیر کوشش ئے اوکړو۔ و لے په دے کښے کامیاب نهٔ شو۔ په دغه ورځو کښے د کشمیر ګورنر د فتح خان ورور محمد عظیم خان وو۔ د دے ناکامیئ نه پس شاه شجاع په کال ۱۸۱۶ء کښے لدهیانے ته لاړ او هلته د خپل ټبر او نورو خپلوانو سره یو ځائے شو۔ او د انګریزانو د یو وظیفه خوار په حیثیت تر هغه وخته په لدهیانه کښے اوسیده کوم وخت چه یو ځل بیا انګریزانو د خپل غرض د پاره هغه کابل ته روان کړو۔

# شاه محمود

## (دوباره سنه ۱۸۰۹ع)

لکه چه مو وړاندې وئیلي دي شاه محمود د شاه شجاع برخلاف په کال ۱۸۰۹ء کښې کامیاب شو - او دغه شان هغه ته د افغانستان تخت بیا په لاس ورغلو - دا ځل هم دا تخت هغه د فتح خان په قابلتوب او زړورتیا حاصل کړے وو - چه شاه شجاع د بادشاهۍ نه لاس اووینځل او د ملتان او ډیره جاتو په علاقه کښې درپه دیکه سر و هلے بر و هلے ګرز یده - په هغه ورځو کښې شاه محمود په اول وار د کشمیر د تسخیر په اراده په اباسیند راپورې وتو - دغه وخت کښې رنجیت سنګه د بهمبیر او پیر پنچال د غرنیزو سردارانو سره په جنګونو کښې لګیا وو - چه رنجیت سنګه د شاه محمود د راتلو نه خبر شو نو هغه په ډیرې تندۍ د هغه ملاقات ته راروان شو - په ظاهره کښې خو د هغه دا ملاقات رسمي او د شاه محمود د احترام پیش نظر وو - ولې په حقیقت کښې د هغه مطلب دا وو چه په څه چل د کشمیر د حملې نه هغه پاتې کړي - ځکه چه کشمیر ته رنجیت سنګه په خپله سترګې خړې کړې وې -

د رنجیت سنګه او شاه محمود دا ملاقات په کال ۱۸۱۱ء کښې د راو لپنډۍ په مقام او شو - رنجیت سنګه یو ډیر چلولی بنیادم وو - هغه شاه محمود ته د خپلې دوستۍ او مرستې داسې لوئې لوئې اسرې ورکړې او د خپلې وفادارۍ په حقله ئې د هغه سره داسې خو ږې پستې خبرې اوکړې چه په هغه باندې د شاه محمود دیو مخلص او وفادار دوست ګمان راغے - په دے مجلس کښې رنجیت سنګه د شاه محمود سره د دوستۍ او ورور ولۍ په توګه پټکے هم بدل کړو - او د دواړو په مینځ کښې د باهمي دوستۍ او وفادارۍ شریفانه لوظ قول اوشو - رنجیت سنګه په عارضي توګه په خپل مقصد کښې کامیاب شو - ځکه چه شاه محمود د حملې نه بغیر بیرته ستون شو -

د دوباره بادشاه کیدو نه پس یکار خو داوه چه شاه محمود د خپلو ورو مبنیو

ټکړو نه څه عقل زده کړے وے. ولے د بادشاه کیدو نه پس هغه بیا خپل زاړه خویونه راواخستل. او په عیاشئ او بداخلاقئ کښے بوخت شو. د حکومت ټول واک اختیارے خپل لوئ وزیر فتح خان ته حواله کړو. په حقیقت کښے عملاً بادشاه فتح خان وو. چه د خپلو اخلاقو او انتظامی قابلیت له مخه د دے درونده کار دپاره ډیر موزون وو. د دے نه پس بادشاه او وزیر دواړو په خپل خپل کار شروع اوکړه. شاه محمود په خپل مخ د عیش و عشرت او بداخلاقئ دروازے پرانستے. او فتح خان د خونړی جنګونو د لاسه د وران شوی ملک د ابادولو لوئ کار ته مخه اوکړه. او ډیر زر ئے د سلطنت تار په تار ټکړے په خپلو کښے بیا اوګنډلے. سنده او بلوچستان ئے بیا رعیت کړل. د هزاره قام یاغیان ئے په حود کړل. او په ټول سلطنت کښے ئے امن و امان قائم کړو. د سلطنت مالیاتو ته ئے توجه اوکړه. د مختلفو محکموتنظیم ئے بیا اوکړو. او په لږه موده کښے ئے د خپل قابلیتوب د بدبه د سلطنت هرګوټ ته او رسوله. د پښتنو تار په تار قبائیل ئے بیا را یو ځائے کړل. کوم سرداران چه د بادشاه د لاسه تزنیدلی وو. د هغوی دلجوئی ئے اوکړه. د سردارانو په مینځ کښے ئے دشمنئ او ترېګنئ لرے کړے. او داسے حالات ئے پیدا کړل چه د ده په دور د لوئ احمدشاه د زمانے ګمان کیدو. دا لوئ میړه د فیریر په الفاظو کښے د هوښیارتیا نه علاوه په جنګی قابلیت کښے هم بے مثله وو. او د ملک په انتظام هم ښه پوهیده. او دا خوبي د ده نه وړاندے په بل یو سردار کښے نه وه. په ده کښے دا صفت وو چه د یاغیانو د تابع کولو نه پس به ئے د امن سره د هغوی مینه پیدا کوله. اګرچه په جنګ کښے به ئے سختی کوله. ولے د فتح نه پس به ئے د خپلے فراخدلئ په وجه د جنګ پرهرونه هم ګنډل. باوجود د دے چه اکثر به په جنګونو کښے ګیا وو. لیکن د حکومت د کاروبار نه به غافله نه وو. او هرے خبرے ته به ئے فکر کاوه. دے لوئ بنیادم به په خپلو ماتحتانو اعتماد ساتلو. او د خپل قام د سردارئ په وجه ئے په خپلو ورونو هم پوره پوره اعتماد وو. هغه د سلطنت په ټولو صوبو په دے وجه خپل ورونه مقرر کړی وو. چه د بغاوت خطره لرے شی. په بلوچستان، قندهار غزنی، بامیان، پیښور اوکشمیر کښے هغه خپل ورونه حاکمان کړی وو. د هغه باقی ورونو به د هغه سره په ملکی انتظام کښے مدد کولو. هغه د خپل کور معاملات خپل کشر ورور دوست محمد خان ته سپارلی وو. اګرچه دا ټولے خبرے هغه د پښتون قام

د عزت په خاطر کولے - ولے د دربار نور امیران وزیران د هغهٔ په دے کل اختیارئ ناراض وو - او د هغهٔ سره به ئے بغض او کینه ساتله - او بادشاه ته به ئے د هغهٔ شکایتونه کول -

د فتح خان په حاسدانو کښے د شاه محمود خپل ځوئے کامران سرفهرست وو - کامران یو ښځو نک ، بزدل او بداخلاقه ځلمے وو - ولے بادشاه چونکه د فتح خان په سر د هر جنجال نه خلاص او خپل عیش و عشرت ته اوزګار وو نو په هغهٔ به د حاسدانو لمسون څه خاص اثر نهٔ کولو - باوجود د دے چه فتح خان د خپلو کارنامو له کبله د سدوزو د سلطنت ورک شوے جاه وجلال په میخځئ ایشیا کښے بیا وګرځاوهٔ - او د هغهٔ نوم په ټولو ملکونو کښے خورُ شو - او په خپل ملک کښے به هم پښتنو هغهٔ ته په درونه نظر کتل - بیا هم فتح خان د خپل اختیار و اقتدار نه د څه ناجائزه فائدے او چتولو خیال په خپل زړهٔ کښے نهٔ لرلو - هغهٔ د بادشاهئ د پاره د سدوزو کورنئ مستحقه ګنڼله - او دا خبره ئے بیخي په خیال کښے نهٔ ګرځیده چه دا سے بے ښے بادشاه له تخته کوز کړی - او په خپله په تخت قابض شی - او د دے هغهٔ هیڅ ضرورت نهٔ ګڼلو - ځکه چه د اختیار ټولے واګے د هغهٔ په لاس کښے وے - ځکه هغهٔ په اخلاص د خپل وطن په خدمت کښے لګیا وو - او کوم اختیارات چه هغهٔ ته حاصل وو په هغے ډیر خوشحال وو -

فتح خان چه د ملک دننه انتظام سم کړو - نو بیا د کشمیر د تسخیر په مهم روان شو - په دے صوبه کښے د شیر محمد خان ځوئے عطا محمد خان ګورنر وو - چه په دغه ورځو کښے ئے خود مختاری اختیار کړی وه - فتح خان چه د کشمیر په اراده راروان شو - او رنجیت سنګهه د هغهٔ دارا دے نه خبر شو نو د هغهٔ سره فکر شو - ځکه چه د فتح خان په حملے د رنجیت سنګهه لوبه بیا ورانیدله - سره د دے دا سیاسی شاطر د فتح خان د غلولو په غرض د فتح خان ملاقات ته راروان شو - ولے په سیاسی شطرنج کښے فتح خان هم د هغهٔ نه څه کم نهٔ وو - به هر حال کوم وخت چه دادواړه سیاسی لوبغاړی سره یو ځائے شول - نو رنجیت سنګهه نهٔ خود هغهٔ سره پټکے بدل کړو - او نهٔ ئے ورسره هغه وعدے اوکړے کومے چه ئے د شاه محمود سره کړی وے - بلکه د دے په ځائے رنجیت سنګهه د ملتان او د اټک ګورنرانو ته د [illegible] ورکولو وعده اوکړه - چه دوئ د شاه شجاع سره ګستاخی کړی وه - او د دے نه علاوه ئے د کشمیر په حمله کښے هم د مدد پیشکش اوکړو - چونکه په دے موقع فتح خان هم د رنجیت سنګهه سره

ورانه نهٔ خوښېږله. نو د ډیر بحث نه پس ئې په کشمیر باندے د رنجیت سنګه سره د مشترکه حملے تجویز منظور کړو. او د دے په بدل کښې ئې د کشمیر د مالیاتو نه رنجیت سنګه ته د نهو لکو روپو ورکولو وعده اوکړه. د فتح خان فوځونو سره ورانه ے لاړل. لیکن د کشمیر ګورنر د فتح خان سره روغه اوکړه. او جنګ او نهٔ شو. په دے وجه فتح خان رنجیت سنګه د مقرر رقم ورکولو نه صاف انکار اوکړو. ځکه چه په شاه شجاع د هغهٔ څه پرواه نهٔ وه او کشمیر د هغهٔ لاس ته راغلے وو. دغه موقع وه (۱۸۱۳ء) چه شاه شجاع د کابل په قید و بند د رنجیت سنګه نظربندی غوره اوګڼله

رنجیت سنګه د کشمیر په معامله کښې څو فتح خان ته پاتے راغ. ولے هغهٔ ته د ګټې یو بل کور په لاس ورغلو. د اټک ګورنر جهاندار خان چه په کشمیر باندے د فتح خان د قبضے نه خبر شو نو د هغهٔ سره د خپل ځان ویره شوه. هغهٔ د سیکانو سره لار اوښیوه. او د فتح خان د رارسیدو نه ئې ورانده ورانده د سیکانو فوځونه د اټک په قلا ور دننه کړل. فتح خان چه د دے واقعاتو نه خبر شو نو د کشرورور دوست محمد خان په کمان کښې ئې دوه زره فوځ د سیکانو مقابلے په غرض ورانده اولیږلو. او په خپله هم په هغهٔ پسے راروان شو. لیکن د فتح خان د رارسیدو نه اول د دوست محمد خان او سیکانو ترمینځه په ۱۳ر جولائی ۱۸۱۳ء د "مانسر" په میدان کښې مقابله راغله. ولے دا ځل د درانیانو په لښکر کښې د وادئ پېښور پښتانه نهٔ وو. دغه وجه وه چه دوست محمد خان د سیک کماندار محکم چند د لاسه شکست اوموندهٔ. د دے خبر چه فتح خان ته اورسیدو نو هغهٔ هم د سیکانو د مقابلے نه ځان وډغوږلو. لارے بدله کړه. او د اټک نه پاس پاس په اباسینډ پورے وتو. د دے نه پس دوست محمد خان هم په چل هنر خپل سرې په اباسینډ پورے ایستل. او کابل ته لاړ. په کشمیر کښې فتح خان خپل ورور عظیم خان ګورنر کړو.

فتح خان چه کابل ته راغ نو دریو کالو پورے د ملک په انتظام کښې لګیا وو. ولے په کال ۱۸۱۶ء کښې د هرات معاملاتو خطرناک صورت اختیار کړو. او د هغې په لور د فتح خان توجه ضروری شوه. په هرات باندے د شاه محمود خپل ورور حاجي فیروزالدین یو قسم څو د مختار حکمران وو. دے شهزاده دا خپله صوبه تر ډیرے مودے د ایران د ډبکے او شاه محمود د چوکے نه بچ ساتلی وه. ولے په دغه

کال د ایران بادشاه د خپل ولیعهد په ماتحتۍ کښې د هرات د تسخیر په غرض یو لوئے فوځ مشهد ته رالولیږلو۔ او په هرات باندے ئے د حملے اراده ښکاره کړه۔ دا یو داسے خبره وه چه فیروز الدین ئے د شاه محمود نه په مدد غوښتلو مجبور کړو۔ او فتح خان د دے جواب داسے ورکړو۔ چه په دومره تندۍ او تادۍ ئے خپل ځان هرات ته اورسولو چه ایرانیان لا د خپل ملک د پولے نه هم نۀ وو راوړیدلی۔

فیروز الدین په زړۀ کښې د ایرانیانو په نسبت د فتح خان نه زیات ویریدلو۔ د هغۀ سره دا خطره وه چه د دے کومک په بدله کښې به ے فتح خان د هرات د حکومت نه محرومه کړی۔ او هم دغه شان اوشوه۔ فیروز الدین په ظاهره کښې خو د فتح خان ډیر دارومدار او قدر عزت اوکړو لیکن د ښار د ننه ئے د هغۀ فوځ ته د قیام اجازت ورنۀ کړو۔ او فتح خان ئے هم صرف د پنځوسو کسو سره ښار ته د ننه پریښنو۔ لیکن د فتح خان د پاره دا بندیزونه د ماشومانو لوبے وے۔ هغۀ دا پابندی اومنله۔ ولے د خپل ځان سره ئے ښار ته داسے پنځوس کسان د ننه کړل چه ښار کښې د هغوی ډیر اثر ورسوخ او دوستان اشنایان وو۔ دغه وجه وه چه دا سړی ښار ته ورد ننه شول نو خپل کار ئے په داسے چپه خُله او هوښیارتیا تر سره کړو چه په ځلورمه ورځ د ښار دروازے لرے شوے او د قلا کنجیانے فتح خان ته حواله کړے شوے۔ د دے نه پس فتح خان سمدستی د هرات په حکومت قبضه اوکړه۔ او فیروز الدین ئے د یوے بدرګے سره کابل ته په دے غرض اولیږلو. چه د ډیرے مودے د خراج حساب کتاب بیباک کړی۔ په دے موقع یو داسے حادثه پیښه شوه چه د هغے په سبب د سپینتو په تباهۍ تاپه اولګیده۔

فتح خان چه فیروز الدین کابل ته اولیږلو نو د دے نه پس ئے د هغۀ د مال و دولت د ضبط کولو حکم اوکړو۔ د هغۀ ټول مال ودولت به د هغۀ په حرم کښې وو۔ په دے موقع د فتح خان کشر ورور دوست محمد خان یا خو په خپل سرځ او یا د مشر ورور په حکم د فیروزالدین حرم سرا لوټ کړو۔ په دے کارکښې د دوست محمد خان سره ے سنګه نوے یو سیک هم ملګرے وو۔ دا سیک سردار دامرتسر سره نژدو د اتاری اوسیدونکے وو۔ او د رنجیت سنګه سخت مخالف وو۔ او د دوست محمد خان سره ئے پناه اخستی وه۔ او د هغۀ دوست وو۔ په دے لوټ کښې د فیروز الدین د کور د زنانۀ وبے عزتی هم اوشوه۔ او دا هم وئیل شی چه دوست محمد خان د فیروز الدین د انړور د سر

نه په زور لوېټه هم راښکه . او دهغه ځ سرتوره پرے شوده . د فیروزالدین دا انزور د شاه محمود لور او د کامران خور وه . د فیروز الدین سره آکرچه د فتح خان سلوک په نیک نیتۍ مبنی وو ځکه چه د هرات حفاظت ضروری وو . او هغه د فیروز الدین په موجودګۍ کښے نهٔ شو کیدلے . لیکن د هغهٔ کور لوټل او د هغهٔ د حرم بے عزتی کول دَ پښتنو د اصول نه بیخی خلاف خبره وه . دغه وجه وه چه فتح خان به دے خبره خپل ورور ته ډیره زورنه ورکړه . او هغه ځ په کشمیر کښے نظربند کړو .

په هرات باندے د قبضے کولو نه پس فتح خان د ایرانیانو تابیا اوکړه . او اوبامیله لرے د ایرانیانو مقابلے ته لاړ . د فتح خان او ایرانیانو مقابله د ،، کافرقلا ،، په میدان کښے راغله . د سحرنه ترمازیګره جنګ جاری وو . په اخر کښے پښتانهٔ بریالی شول . د ایرانیانو لس زره سپاهیان مړهٔ شول او نورو تیښته اوکړه . پښتنو هم ورپسے بحاے راښکلے ولے د ایرانی فوځ ګیلی دپښتنو د تعاقب نه په دے وجه خلاص شول چه عین په دے موقع فتح خان په یوګولۍ په خُله باندے اولګیدهٔ او بے هوشه راپرے وتو . په دے خبره د پښتنو په فوځ کښے لویه بدنظمی پیدا شوه . ولے د فتح خان حالت ډیر زربنهٔ شو . لیکن دغه وخت ایرانی سپاهیان ډیر وړاندے تلی وو . او دهغوی تعاقب بےکاره وو . په دے جنګ کښے ایرانیانو ته دومره لویه صدمه اورسیدله چه تر ډیرے مودے هغوی بیا د هرات نامه په خُله وا نهٔ خستله . د دے نه پس فتح خان د ایرانی خراسان د فتح کولو تکل کولو چه په دغه وخت کښے د هغهٔ د ړندیدلو افسوسناکه واقعه اوشوه . د دے پیښے په وجه د افغانستان حالت بیخی بدل شو . او ده سدوزو په لمنه د بدنامۍ یو داسے تور داغ اولګید چه د هغ توروالے د زمانے په تیریدو سره هم کم نهٔ شو .

لکه چه وئیلی شوی دی . د فتح خان په مخالفینو کښے د شاه محمود خپل ځوئے کامران سرفهرست وو . د فتح خان سره د هغهٔ د بغض کینے یوه وجه د نورو خبرونه علاوه دا هم وه چه کامران د شاه زمان ځوئے قیصر مرزا وژلے وو . او د دے په سزا کښے فتح خان هغه د یوے صوبے د حکومت د ذمه وارۍ د پاره نا اهل ګڼلے وو . او د دے کبله به په دربار کښے او سیدهٔ . اوس چه حاجی فیروزالدین هم د فتح خان دلاسه زخم خورده شو . او هغه د کور د زنانهٔ و بے عزتی هم اوشوه . نو د فتح خان برخلاف د بادشاه په لمسولو او پارولو کښے حاجی فیروزالدین هم د کامران سرګرم ملګرے شو .

تر دې وخته شاه محمود د فتح خان برخلاف په یو شکایت هم غوږ نهٔ کړ ولو. ولې کوم وخت چه کامران او فیروزالدین هغهٔ ته د خپلې لور او نورو خوئیند وخور. لنو د بې عزتئ ننګ ور مخکښې کړو. او ورته ئې اووې چه ستا لور په خپل کور کښې د دوست محمد خان او د هغهٔ د سیک ملګری د لاسه بې ستره او سرتوره شوه نو د دې خبرې د شاه محمود په عقل داسې پرده راوسته چه هغهٔ د فتح خان ټول احسانات هیر کړل. او دومره قهر واخست چه د فتح خان د اظهار و بیان انتظار ئې هم او نهٔ کړو. بلکه په پټو سترګو ئې د فتح خان نه د سترګو ایستلو حکم اوکړو. دا ظالمانه فعل شاه محمود د شاه زمان سره هم کړې وو. چه محمود دا حکم اوکړو نو د کامران د زړهٔ مراد تر سره شو. حکم ئې د ځان سره پټ اوساتلو. او سردار فتح خان نه د سترګو ایستلو په غرض د کال ۱۸۱۷ء په اخر کښې د هرات په لور روان شو.

کامران چه هرات ته اورسید نو سردار فتح خان د هغهٔ ډیر عزت او احترام اوکړو. د هغهٔ په خوا خاطر کښې هم دا نهٔ راتله چه شاه محمود به د هغهٔ په مقله د داسې نا شکرئ او احسان فراموشئ نه کار اخستې وی. به هر حال کامران په بادشاهی باغ کښې ډیره شو. او د یو مناسب موقع په انتظار کښې کښیناست. دا موقع هغهٔ ته ډیر زر په لاس ورغله. فتح خان به هره ورځ د کامران سلام ته ورتلو. یوه ورځ چه د فتح خان سره ډیر لږ سړی وو نو کامران هغه سمدستی ګرفتار کړو. او بیا ئې ترینه سترګې اوویستلې او نهٔ صرف د خپلو سدوزو د حکومت عمارت ئې ړنګ کړو. بلکه د ټولو پښتنو د بې عزتئ او بې آبروئ بنیاد ئې کښیښود.

په دې ورځو کښې د فتح خان سره د هغهٔ درې ورونه پوردل خان، شیردل خان اوکوندل خان هم هرات کښې موجود وو. ولې د فتح خان د سترګو ایستلو په موقع دوئ موجود نهٔ وو. کامران د دوئ د نیولو په غرض یوه فوځی دسته اولیږله. مګر شیردل خان اوکوندل خان اوتښتیدل. او پوردل خان د ناجوړتیا په وجه د کامران په لاس کښې ګیر شو. کامران چه د شیردل اوکوندل د تیښتې نه خبر شو نو ډیر قهر واخست او د هغوئ په نیولو پسې قندهار ته روان شو. شیردل خان اوکوندل خان د ګرشک نه درویشت میله لرې په ناد علی نومې قلا کښې پټ شول. او د دغه ځائ نه ئې د بارک زو قبیلې ته لمسون شروع کړو. لږې ورځې پس پوردل خان هم د قید نه اوتښتیدو او د دوئ سره یو ځائ شو. د دې ورونو په کوشش د بارک زو ټوله قبیله د دوئ

په مرسته اودریده. او په ټوله صوبه کښې ئې بغاوت اوکړو. محمد عظیم خان دکشمیر ګورنر چه ددې واقعاتو نه خبرشو نو هغهٔ هم بغاوت اوکړو. او خپل کشر ورور دوست محمد خان ئې په دې غرض کابل ته رااولیږلو چه د حالاتو جاج واخلی.
شاه محمود ته چه ملک بلوه شو نو هغه ایله د خپلې عیاشئ نه راویښ شو. ولې د فتح خان سېنه انتظام اودده چلې عیاشئ په دهٔ کښې د مقابلې او جرأت صفات ختم کړی وو. چه ملک ورته بو بلا شو. نو وارئې خطا شو. هیڅ ترې جوړه نهٔ شوه. په کابل کښې ئې خپل نمسے جهانګیرمرزا پریښود او خپله غزنی ته لاړ. دغه وخت دوست محمد خان هم کابل ته رااورسیدهٔ. او د خپل معمولی فوځ په مرسته ئې جهانګیرمرزا د کابل نه اوتښتولو. په کابل ئې قبضه اوکړه. او عظیم خان ئې سمدستی خبرکړو. عظیم خان په کشمیر کښې خپل ورور جبار خان په خپل ځائے پریښود او په خپله د کابل په نیت رااوان شو. په بل لور کامران هم د دولس زره فوځ سره د دوئ مقابلې ته راروان شوے وو.
د کامران او دوست محمد خان د دوئ مقابله د کابل او غزنی ترمینځه اوشوه. د کامران فوځ طاقت زیات وو. ځکه هغه په خپله ګټه داده وو. لیکن د جنګ نه اول شپه په شپه د کامران فوځ د هغهٔ نه بارک زو وروڼو ته رااواوړیدهٔ. او کامران ئې په ډاګه پریښود. د ویرې په دې حالت کښې کامران غزنی ته اوتښتیدهٔ. او د هغه ځائے نه د خپل پلار، قیدی فتح خان چه اوس د کامران د لاسه ړوند هم وو او دیو څو نوکرانو او د خپلو خزانو او جواهراتو سره په تېښته لاړ. او چه یو دوه پړاوه مزل ئې اوکړو نو احسان فراموش شاه محمود فتح خان خپل ځان ته رااوغوښتو او ورته ئې اووے چه خپلو وروڼو ته خبر اولیږه چه هغوی دا شر فساد پریږدی. او زما اطاعت اومنی. ولې دے ننګیالی او زړهٔ ور پښتون ورته ډیر په کلکه جواب ورکړو. او ورته ئې اووے " د کومے ورځ نه چه زما نه سترګے وییستلے شوی دی. د هغې ورځ نه زما وروڼه هم زما د لاس نه وتلی دی. اوس زما نهٔ په هغو څه اختیار شته او نهٔ زهٔ د هغوی سره د وکه کول غواړم. د دنیا د معاملاتو سره زما اوس هیڅ تعلق نشته."
په دے خبره بزدل شاه محمود نور هم په قهر شو. او هغهٔ د خپل محسن فتح خان د وژلو حکم اوکړو. اول ګذار پرے کامران خان اوکړو. او بیا پرے د هغوی هغه خوشامند

ګر سرداران رااوګیډل کوم چه د فتح خان نه ناراض وو - او هغه ئ داسے په وحشیانه طریقه اووژلو - چه انسانیت ته پرے شرم ورځي - په ژوندون ئ ترینه څرمن اوویستله - د هغهٔ د وجود نه ئ هراندام پرے کړو - او بیا ئ د غوښو دا ډیرے په یو بوجئ کښے واچولو - او د ځان سره به ئ دا بوجئ ګرزوله - په اوومه ورځ چه د فتح خان د ورونو دا غوغا سره شوه نو بیا ئ په غزنی کښے ښخ کړو -

فتح خان د غیر معمولی جرأت او استقلال خاوند وو - په کومه خوفناکه طریقه چه هغه د شاه محمود په حکم قتل شو - او کوم غیر معمولی جرأت او استقامت چه هغهٔ په دے موقع څرګند کړو - د هغې مثال نه شي موندے - «فیریر» د دهٔ په باب کښے داسے واۍ «په دے ټول وخت کښے د دے هولناکو دردونو او عذابونو په دوران کښے د سردار فتح خان د خُلے نه اف قدر له هم اونهٔ وتو - نهٔ ئ ژړا واویلا اوکړه - بلکه د هغهٔ د ضمیر پاکوالی هغهٔ ته غیر معمولی تسکین او د هغهٔ جرأت هغهٔ ته غیر معمولی استقلال ورښلے وو - د سردار فتح خان د قتل واقعه په کال ۱۸۱۸ء کښے شوی وه - په پیښور کښے وزیرباغ د سردار فتح خان بنا کړده او د هغهٔ یادګار دے - په دے باغ کښے به هغهٔ د پیښور د دورے په وخت کښے قیام کولو -

د سردار فتح خان د قتل نه پس ټول ملک بلوه شوے وو - او محمود او د هغهٔ ځوئ کامران په غزنی کښے هم د ټینګے نهٔ وو - د دے وجه وه چه پلار او ځوئ دواړه د یو څو نوکرانو سره د هرات په نیت رارون شول - ولے در په دربه ګرځیدل - په دے اواره ګردئ کښے ترینه خپل ملګری هم جدا شول - دغه وخت هر څوک د دوئ نه ویزاره شوی وو - او عجیبه پرے لا دا چه پلار او ځوئ هم په خپلو کښے په یو بل بے اعتباره وو - اخر په ډیر بد حال هرات ته اورسیدل - دغه یوه صوبه وه چه تراوسه په کښے د سدوزو خلاف بغاوت نهٔ وو شوے - ولے په هرات کښے هم دوئ په ارام نهٔ شول - د هرات د حکومت په باب کښے د شاه محمود، حاجي فیروزالدین، او کامران ترمینځه جګړے پیدا شوے شاه محمود خپل ځان بادشاه ګڼلو - ولے د هغهٔ خپل ځوئ کامران د هغهٔ بادشاهي نهٔ منله - او حاجي فیروزالدین د دے دواړو نه په هرات خپل حق زیات ګڼلو - ځکه چه په دے صوبه هغهٔ وړاندے شپاړس کاله حکومت کړے وو - ولے فیروز الدین د کامران او محمود د جنګونو نه داسے تنګ شوے وو چه هغه مشهد ته لاړ.

او دایرانی حکومت سره ئې پناه او نیوله. ولې د دغه په تلو هم د پلار او ځوی دا جنګونه ختم نهٔ شول. د دوئ د دې جنګونو نه دایران بادشاه هم فائده واخستله. او په هرات ئې د حملې دپکه اوکړه.

شاه محمود او کامران د ایران د مقابلې طاقت کله لرلې شو. سمدستي ئې د ایران خراج ته غاړه کېښوه. بیا هم د پلار او ځوی ځګړې د کال ۱۸۲۹ء پورې جاری وې. په دغه کال شاه محمود په غسل خانه کښې مړ بیا موندې شو. د دهٔ دا مرګ د کامران په سازش شوې وو. د شاه محمود د مرګ نه پس کامران څه موده په هرات کښې حکمران وو. ځکه چه د دې دوران کښې بارک زی سرداران د سیکانو سره په جنګونو کښې ښبتي وو.

# بادشاه‌ګردي

د تیمور شاه د مرګ (سنہ ۱۷۹۳ء) نه پس د سنہ ۱۸۱۸ء پورے چه په دغه کال د فتح خان د مرګ افسوسناکه واقعه شوی وه - ټوله زمانه د پښتنو تاریخ په حقیقت کښے د شاهی کورنئ د سازشونو او د تخت نشینئ د جنګونو تاریخ دے - دغه زمانه د افغانستان د پاره د بادشاه ګردئ زمانه وه - او د دے بادشاه ګردئ فائده یواځے سیکانو ته او نه وتله بلکه بالواسطه انګریزانو هم د دے نه فائده واخستله - او د دے خانه جنګئ او سازشونو په وجه ایران هم په پښتنو زورور شو - دے بادشاه ګردئ د وزیر فتح خان مرګ (سنہ ۱۸۱۸ء) نه پس نور هم خوفناک شکل اختیار کړو - دغه وخت کښے د دے جنګونو د سدوزو او محمدزو ترمینځه د حصول تخت د جنګونو حیثیت اوموندلو - څه رنګ چه په "پوپلزو" کښے سدوزی یوه څانګه ده - دغه شان "محمدزی" د بارک زو یوه څانګه ده - او په محمد زو کښے مشهوره کورنئ د پاینده خیلو ده - چه د حاجی جمال خان نه شروع کیږی - حاجی جمال خان هغه سړے دے چه د نادر شاه په وخت کښے د هغه د مشهور پښتو ن فوځ په سردارانو کښے یو سردار وو - او کوم وخت چه احمد شاه د بادشاه په ډول منتخب شو نو هغه د احمد شاه په حق کښے خپلے ټولے دعوے پریښے وے - په کومه ذلیله او مکروهه طریقه چه شاه محمود او کامران سردار فتح خان قتل کړے وو هغه د ټولو پاینده خیلو سردارانو د پاره د بغاوت یو اشاره شوه - د فتح خان شل ورونه ژوندی وو - او هریو د خپل ورور د بدل اخستلو ته تیار شو - دغه وجه وه چه د سدوزو د سلطنت په هر یو ګوټ کښے د بغاوت تیزے تندے سیلئ والوتلے - او د دے په نتیجه کښے شاه محمود او کامران هرات ته په تیښته مجبور شول - او د هرات صوبه د کابل د مرکزی حکومت نه جدا شوه - د پښتنو سرحدی قبائیلو هم د حکومت د پابندئ

نه خان ازاد کړو - او د نوی شاهی کورنۍ اطاعت منلو ته تیار نهٔ شو - غرض په ټول ملک کښې طوائف الملوکی وه - او تر ډیرے مودے یو داسے سرے پیدا نهٔ شو چه د سلطنت دا تار په تار ټوټے ئے په خپل مینځ کښې بیا سره ګنډلے وے - دا حالت د ۱۸۲۶ئ پورے قائم وو - ولے دغه وخت د عظیم خان د مرګ نه پس دوست محمد خان په کابل قبضه اوکړه - غزنے ئے هم په خپل حکومت کښې شامل کړو - او ورو ورو ئے خپل قوت مجتمع کړو - او خپل حکومت ته ئے یو قسم مرکزی حیثیت ور کړو - په دے ورځو کښې د شاه محمود حکومت په هرات کښې محدود وو - او په قندهار او پېښور د دوست محمد خان نور ورونړه قابض وو -

نکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د فتح خان د مرګ په واقعه عظیم خان په کشمیر کښې خپل یو ورور جبار خان په خپل ځائے پریښود او په خپله کابل ته راغے - او په کابل ئے قبضه اوکړه - دوست محمد خان په غزنی قبضه اوکړه - او پوردل خان او د هغهٔ ورونړو قندهار اونیوو - پېښور د یار محمد خان لاس ته راغے - او خپل سکه ورونړه ورسره هم وو - د فتح خان نورو ورونړو د ملک مختلف علاقے راڼلاندے کړے - ولے دا ټول ورونړه په خپل مینځ کښې په یو خبره هم متفق نهٔ وو - او نهٔ ئے په یو بل اعتماد لرلو - بلکه هر یو په دے کوشش کښې لګیا وو - چه خپل اقتدار زیات کړی - تر دے وخته دوئ د سدوزو نه د تخت اخستلو اراده نه لرله - بلکه په دے کوشش کښې لګیا وو چه د سدوزو یو داسے شهزاده تخت نشین کړی چه تخت د هغهٔ په نوم وی او حکومت دوئ کوی - د دے کار ابتدا پوردل خان اوکړه -

د پوردل خان په خیال کښې د بادشاهئ د پاره شاه شجاع موزون وو - ځکه چه هغه یو شریف او دروند خوی بادشاه وو - په دے غرض هغهٔ خپل ورور کندل خان شاه شجاع ته چه په دغه ورځو کښې په شکارپور کښې وو د صلاح مصلحت په غرض اولیږلو - کندل خان شاه شجاع ته د افغانستان تخت بیا پیش کړو - د کندل خان په دے دعوت د شاه شجاع امیدونه بیا تاند شول - او د بارک زو ورونړو سره د مشورے په غرض پېښور ته راغے - محمد عظیم خان هم د دے جرګے په غرض پېښور ته راغلے وو - په پېښور کښې د شاه شجاع او بارک زو ورونړو ترمینځه د اختیاراتو د تقسیم په مقله خبرے اترے شروع شوے - ولے دا خبرے کامیابے نهٔ شوے - شاه شجاع د بارک زو ورونړو نه غیر مشروط امداد غوښتلو - او په خپل ځان باندے د هیڅ قسمه پابندۍ منلو ته تیار نهٔ وو - په بل لور بارک زو ورونړه

رنګک چه د بادشاهئ د پاره د سدوزو کورنئ مستحقه ګڼله - دغه شان ئ دوزارت او نورو اهمو عهدو دپاره بارک زی او په دوئ کښې محمد زی مستحق ګڼل - خو شاه شجاع د دوئ دے حق منلو ته تیار نهٔ شو - او د دے نتیجه دا شوه چه د فتح خان وروڼو هم دهغهٔ د امداد نه انکار اوکړو - په شجاع کښې په خپله دومره طاقت نهٔ وو چه افغانستان ئ په خپلو متو فتح کړے وے - د فتح خان وروڼو هغه دهئ و کابل ته پرے نښو - او شجاع واپس شکارپور ته لاړ

د دے نه پس محمد زو وروڼو د تیمور شاه یو بل ځوئ ایوب شاه سره خبرے اوکړے - دے شهزاده د شجاع نه برعکس رویه اختیار کړه - دهٔ دعوی ته اووئیل چه تاسو ما هسے په نوم بادشاه کړئ - نور اختیارات زما پکار نهٔ دی ؛ دا خبره اومنلے شوه - ایوب شاه بادشاه شو - او محمد عظیم خان دهغهٔ وزیراعظم - ولے ایوب شاه خو دا وعده کړی وه چه زهٔ به د حکومت اختیارات نهٔ استعمالوم - دا خوئ نهٔ وو وئیلی چه سازشونه به نهٔ کوم - نو د بادشاه کیدو نه پس ئ په سازشونو شروع اوکړه - د دهٔ سازشی خطونه اونیولے شول - او دهغ په نتیجه کښې د تخت نه کوز کړے شو - هم په دغه ورځو کښې د ایوب شاه دوۀ نورو وروڼو سلطان علی او مراد علی د قندهار نه شاه شجاع او شاه محمود ته خطونه لیږلی وو - دا خطونه هم اونیولے شول او د دے په سزا کښې دواړه شهزادګان اووژلے شول - د دے واقعاتو په ظهور پائنده خیل سرداران د سدوزو د خیر نه قطعی مایوس شول - او د دے نتیجے ته اورسیدل چه سدوزی زمونږ حق منلو ته تیار نهٔ دی - نو د دوئ هم د سدوزو نه زړهٔ صبر شو - او د خپل حکومت قائمولو تابیا ئ شروع کړه - محمد عظیم خان د ټول ملک انتظام په لاس کښې واخست - ولے نهٔ خو دے بادشاه وو او نهٔ یو لوئ امیر - او د دے نه علاوه د خپلو وروڼو هم جبر بدی شو - د افغانستان د دے طوائف الملوکئ په نتیجه کښې د افغانستان د مرکزی حکومت نه د هرات صوبه هم اوشلیده - او د بلخ و بدخشان علاقے هم د دوئ نه جدا شوے - او د اباسین نه په نرخاتهٔ په ټوله علاقه سیکانو قبضه اوکړه -

د سیکانو د اقتدار اغاز خو د احمد شاه د زمانے نه شوے وو - او دهغهٔ د جانشینانو په زمانه کښې دوئ د رنجیت سنګه په مشرئ کښې د سدوزو د اطاعت نه ځان ازاد کړے وو - ولے د شاه شجاع تر وخت (۱۸۰۹) پورے عملاً د دوئ اقتدار د ،، دره مار ګله ،، نه په قبله نهٔ وو راخور شوے لیکن د دے بادشاه ګردی په وخت کښې د رنجیت سنګه غوندے یو چالاک او هوښیار سړی دم ته خاموش پاتے کیدل ناممکن وو - هغه د دے حالاتو نه ډیره فائده واخستله - او د محمد زو او د سیکانو د جنګونو په نتیجه کښې د اباسیند نه په قبله ټوله علاقه ان د خیبرهٔ پورے د سیکانو په قبضه کښې راغله - د پښتنو په علاقه د سیکانو دا لنډ دور اقتدار د خپلو هولناکو ظلمونو له کبله د پښتنو د تاریخ یو تاریک باب دے - او په دے وجه دا ضروری ده چه د سیک فرقے د اغاز تاریخ په لنډ ډول ذکر شی -

# سیکان او دهغوی عروج

داسلام او هندو مذهب دباهمی سابقې په نتیجه کښې په هندوانو کښې ځینې داسې مذهبي مصلحان پیدا شوي دي چه دهغوی د خپلو تعلیماتو په رڼا کښې داسلامي تعلیماتو نه ډیر متأثر معلومیږي. په داسې مذهبي مصلحانو کښې یو سړے د سیکانو د مذهب باني «ګورو نانک دیو» هم دے.

ګورو نانک دیو په کال ۱۴۶۹ء کښې د پنجاب په یو کلي «ننکانه» کښې پیدا شوے وو. نوموړے د خپل تعلیم له مخه د هندوانو او مسلمانانو ترمینځه د ښو او بهترینو تعلقاتو ساتلو قائل وو. دهٔ په خپل تعلیم کښې د توحید په عقیده ډیر زور ورکړے دے. د دهٔ دا خیال وو چه انسان صرف په عبادت او پرهیزګارئ نجات نهٔ شي موندلے. ترڅو چه هغه د انسانیت قدر او نهٔ کړي. او د خپل زړهٔ نه بغض او کینه او نهٔ باسي. هغهٔ د مذهب د ظاهري رسوماتو او د هندوانو د ذاتونو د بندش او بت پرستئ سخت مخالف وو. کومو خلقو چه د هغهٔ پیروي اختیار کړه. وروستو هغه خلق د «سیک» په نامه مشهور شول. دګورو نانک پیش نظر څه سیاسي جماعت قاشول نهٔ وو. ولې د هغهٔ نه پس چه څوک د هغهٔ جانشین شول د هغوی په وخت کښې د سیاسي واقعاتو دا اثر په وجه د سیکانو مذهبي ټولي د یو سیاسي جماعت حیثیت اختیار کړو.

د «ګورو نانک» نه پس «ګورو انګد» او «ګورو امرناته» خپل وخت او خپل طاقت په مذهبي کارونو کښې صرف کړو. ولې څلورم ګورو «ګورو رامداس» د اکبر د مذهبي پالیسئ نه فائده واخستله. او د خپل مذهب په مقبولیت او اهمیت کښې ئې ډیره اضافه اوکړه. اکبر دهٔ ته څه زمکه ورکړې وه. په دے زمکه دهٔ د امرتسر بنیاد کیښود. پنځم ګوزو ارجن (۱۵۸۱ - ۱۶۰۷) هم د اکبر سره ښهٔ تعلقات لرل. په دے سړي کښې د تنظیم ډیر قابلیت وو. دهٔ په خپل وخت کښې د سیکانو مذهبي

کتاب «گرنتهـ» مرتب کړو۔ او د سیکانو مرکز ئے امرتسر ته منتقل کړو۔ د دے گورو په وخت کښے د چندے د وصولولو د پاره هم قواعد مرتب شول۔ په دے ډول د سیکانو جماعت د یو لوئے مذهبي جمات حیثیت او موندلو۔ د جهانګیر په وخت کښے دے گورو د شهزاده خسرو سره هغه وخت څه مالی امداد کړے وو۔ کوم وخت چه هغهٔ د پلار نه بغاوت کړے وو۔ د دهٔ دا فعل د بادشاه برخلاف بغاوت اوګنلے شو۔ او په دے جرم کښے گرفتار او بیا قتل کړے شو۔

د دهٔ نه پس «گورو هرگوبند» (۱۶۰۶ – ۱۶۴۵) په گدۍ کښیناست۔ جهانګیر په دے گورو ډیر مهربان وو۔ او د هفت صدۍ منصب ئے ورکړے وو۔ په کال ۱۶۲۰ء کښے چه جهانګیر کشمیر ته تلو نو دے ئے هم د ځان سره کشمیر ته بوتلے وو۔ ولے د شاه جهان په وخت کښے د دے سیک گورو او مغل فوځونو ترمینځه جنګونه او شول۔ دا گورو په کال ۱۶۴۵ء کښے وفات شو۔ د دهٔ لویه کارنامه دا وه چه دهٔ د سیکانو مذهبي جماعت په یو فوځي جماعت کښے بدل کړو۔

اووم گورو «هررائے» نومیده۔ دا سړے د خپل پیش رو د پالیسۍ خلاف د صلح کن طبیعت خاوند وو۔ د شهزاده دارالشکوه سره ئے ډیر ژور تعلقات وو۔ د دهٔ په وخت کښے د سیکانو په شمیر کښے زیاتے راغلو۔ په دهٔ پسے «هرکشن گورو» شو۔ چه په کال ۱۶۶۴ء کښے وفات شو۔ او د هغهٔ په ځائے تیغ بهادر گورو شو۔ «تیغ بهادر» څه موده د اورنګ زیب په ملازمت کښے هم وو۔ ولے وروستو د دے گورو خپل ترهٔ «رام داس» شهنشاه اورنګ زیب د دهٔ برخلاف اوپارولو۔ د دے نتیجه دا شوه چه تیغ بهادر په شاهي علاقو باندے تاختونه شروع کړل۔ اخر د شاهي فوځونو په لاس گرفتار او بیا په دهلي کښے اووژلے شو۔ دا پیره د خپل گورو په قتل سیکانو ته ډیر قهر ورغلو او شهنشاه اورنګ زیب د دشمنۍ ته ئے ملا اوتړله۔

په تیغ بهادر پسے «هرگوبند گورو» شو۔ دے یو هوښیار سړے وو۔ د دهٔ دا خیال وو چه په ظاهره د شهنشاه د فوځونو مقابله گرانه ده۔ نو په چپه خوله د خپل جماعت په فوځي تنظیم کښے لګیا شو۔ دا کار د ۱۶۹۵ء پورے دهٔ په خاموشۍ سرته اورسولو۔ د دے نه پس دهٔ د پیغمبرۍ دعویٰ اوکړه۔ د ذات بندشونه ئے بیخي مات کړل۔ د گورو د اطاعت او فرمان بردارۍ ئے ډیر تاکید اوکړو۔ د یوې نوی ورورولۍ بنیاد ئے کیښود۔ چه اوس ورته «خالصه» وائي۔ د دهٔ د تعلیم خاص اصول دا پنځه وو:۔

(۱) په نوي ورور ولۍ کښې د شامليدو نه پس به ټول سيکان يو خاص رسم اداکوي (۲) د يو خدائ عبادت به کوي - (۳) د ګورو نانک او د نورو ګوروګانو احترام به کوي (۴) ګرنته به خپل مذهبي کتاب مني - (۵) يو بل ته به په خاص طريقه سلام کوي - دده دا حکم وو چه هر يو سيک به ږمنځ، چاقو او توره ضرور او هر وخت دځان سره ساتي - ويښته به نه پريکوي - او کچهه يعني « شين جانګې » به اغوندي - دده په حکم سيکانو د خپلو نومونو سره د « سنګه » لفظ اولګولو - د دې لفظ معنی « زمرے » ده - په دې چلونو هغه د سيکانو مذهبي جماعت په يو فوځي نظام کښې بدل کړو - او د دې نه پس ئې دا اراده اوکړه چه د سيکانو د پاره يو آزاد رياست قائم کړي -

په دغه ورځو کښې شهنشاه اورنګ زيب د دکن په جنګونو کښې مصروف وو - نو ده د شهنشاه د غير موجودګۍ نه فائده واخستله - او د حکومت په غرنيزو قلاګانو ئې قبضې شروع کړے - چه شهنشاه اورنګ زيب د دې واقعاتو نه خبر شو نو دے ئې دکن ته راوبللو - او مجبوراً ئې دا ګورو ورغلو - ولې رسيدلے لا نه وو چه شهنشاه اورنګ زيب په حق اورسيدو - شهزاده معظم بهادرشاه د دے ګورو ډيره نازخته اوکړه او دکن ته ئې د مرهټيانو په جنګ اوليږلو - ولې په سنه ۱۷۰۸ء کښې د ناندير په مقام د يو پښتون د لاسه اووژلے شو - د دې پښتون پلار د اسونو سوداګر وو - او د دے ګورو وژلے وو -

د دې نه پس سيکانو د مغل حکومت د کمزورۍ نه فائده واخستله - په پنجاب کښې ئې خپل طاقت زيات کړو - د نادرشاه د حملے نه پس مغل حکومت هسې په نوم قائم وو - د دغه وخت د سيکانو طاقت په پنجاب کښې يو محسوس او موثر شکل اختيار کړو - ولې تر دې وخته د دوئ طاقت په يو مرکز غونډ نه وو - بلکه ټول سيکان په مختلفو مثلونو يا ټبرونو کښې ويشلي وو - او هر يو ټبر د خپل طاقت په زياتولو کښې لګيا وو -

احمدشاه دراني چه په سنه ۱۷۶۱ء کښې د پاني پت په تاريخي ميدان کښې د مرهټيانو د عروج محل د ونځه اونړولو - او د سرهند پورے علاقه ئې په خپل حکومت کښې شامله کړه - او بيرته قندهار ته لاړ نو سيکانو ته ميدان خالي پاتے شو - او دوئ په پنجاب کښې د شراو فتنې اغاز اوکړو - او څو ځله ئې احمد شاه پنجاب ته په راتلو مجبور کړو - ولې احمدشاه که هر څومره دا خلق اووژل او شکستونه ئې ورکړل ولې دوئ ئې د خپل عمل نه وانه ړول - چه هغه به شا کړه نو دوئ به بيا د غرونو نه راښکته شول - او په ملک

کښې به ئې ناتار جوړ کړو -

د احمد شاه نه پس د تیمور شاه په زمانه کښې هم دا حال وو - او بیا د هغه نه پس چه زمان شاه تخت نشین شو - د غه وخت کښې هم د سیکانو د لاسه په پنجاب کښې ډیره بدنظمي وه - او زمان شاه څو ځله د دوئ د غوبرونو تاوولو په غرض پنجاب ته راغلے وو - او تر ډیره حده هغه د دوئ په قابو کولو کښې کامیاب شوے هم وو - ولے هغه هم د خپل نیکه، احمد شاه په شان غلطي کړې وه - که چرے هغه خپل صدر مقام لاهور ته منتقل کړے وے نو پنجاب به هم د هغه په قبضه کښې پاتے وو - او خپل آبائي وطن هم - ولے هغه دا سے او نه کړل - او چه هغه به پنجاب ته راغلو نو خپلو ورونړو به په خپل وطن کښې د هغه په لار کښې اړمي کړل - بغاوتونه به ئې شروع کړل - او هغه به ئې په بیرته تللو مجبور کړو - په دې وجه به سیکانو ته د خپل اقتدار د زیاتولو نوره هم ښه موقع په لاس ورغله - سره د دې د زمان شاه د حکومت په زمانه کښې د پنجاب صوبه هسې په نوم څو د سدوزو په سلطنت کښې شامله وه او لاهور د دې صوبے صدر مقام وو - اګرچه د دوئ د حکومت د اقتدار دائره ډیره محدوده وه - او د راولپنډئ پورے علاقه د سیک سردارانو په لاس کښې وه. او د سیکانو واړه سرداران د موها سنګه رچه د رنجیت سنګه پلار وو) په مشرئ کښې عملاً د دره مارګلا او حسن ابدال پورے علاقه باندے قابضان وو - ولے تر دغه وخته لا د دوئ اقتدار دا باسیند نه نه وو را پورے شوے - او ملتان، کشمیر ډیره جات، او د پیښور وغیره علاقے د سدوزو په سلطنت کښې شاملے وے -

زمان شاه د خپلے تخت نشینئ په زمانه کښې د دے خبرے بار بار کوشش کړے وو - چه د وادئ سندھ دا بدنظمي ختم کړي - او د خپل حکومت دبدبه په دے علاقو کښې قائمه کړي - او یواځې د پنجاب علاقه نه بلکه د هندوستان مسلم ریاستونه چه په دے ورځو کښې د انګریزانو او مرهټیانو د لاسه په اخری سلګو وو - د دے څنګدن نه خلاص کړي - ولے په هره موقع هغه د خپلو کورنو بغاوتونو په وجه په دے مقصد کښې کامیاب نه شو - او د هغه د پرله پسې تاختونو او زغاستونو څه مستقله او پائداره نتیجه ئې د دے نه نور هیڅ او نه وتله چه ملک نور هم تباه شو - او سیکان نور هم زړوزا او ګیره شول -

د پنجاب په دے بدنظمئ کښې د پلار نه پس رنجیت[1] سنګه د نورو سردارانو
(حاشیه په صـ۷۵۴ ګورئ)

په نسبت د زیات اثر خاوند شوے وو- هغهٔ په خپل زړهٔ کښے دلاهور د قبضے خیالات کړلی وو- او هغهٔ خپل مراد ته زر اورسید په یو موقع زمان شاه په پنجاب حمله کړې وه- وے هغه په وطن کښے د یو بغاوت په وجه په ډیرے تندئ بیا کابل ته روان وو. او د جهلم په سیند کښے د هغهٔ نه یو څو توپے ډوبے شوے وے- دا توپے څو ورځے پس رنجیت سنگهه د سیند نه راوباسلے او په زمان شاه پسے ئے پیښور ته اولیږلے. زمان شاه په دے خبره دومره خوشحال شو چه هغه ئے د دے په انعام کښے د خپل طرف نه د لاهور گورنر کړو - او دغه شان قدرت دلوړ همتی رنجیت سنگهه دا لوئے خواهش په اسانه پوره کړو- وے د رنجیت سنگهه د قابلتوب او زورتیا یواځے دا واقعه نهٔ ده- چه د دے په وجه ئے د سدوزو بادشاه دے خبرے ته مائل کړو چه هغه په خپله یوے مخدوشے صوبے یو چلولی او هوښیار سیک خپل گورنر مقرر کړو- بلکه د دے نه پس د رنجیت سنگهه ذات د پنجاب د تاریخ محور شو - او تش دا نه چه سیکانو د رنجیت سنگهه په مشرئ کښے په پنجاب کښے خپل حکومت قائم کړو- بلکه د زمان شاه د ورور شاه شجاع نه ئے د هغهٔ د ابائی عظمت واحده نسخه "کوه نور" هم په ډیره ظالمانه طریقه اوترولو- او بیائے د محمد زو ورونو دے اتفاقئ په زمانه کښے په ملتان اوکشمیر هم قبضه اوکړه- او د اباسیند نه په قبله ترجبر وده پورے علاقه ئے هم اونیوله - او ډیره جات، بنوں، کوهاټ وغیره علاقے ئے هم په خپل سلطنت کښے شامل کړے-

د سیکانو په باب کښے دا خبره مشهوره ده چه دوئ کار اول کوی- او فکر پرے وروستو کوی- وے دا سے معلومیږی چه د سیکانو په عقله به دا نظریه د رنجیت سنگهه نه پس مشهوره شوی وی- اویا رنجیت سنگهه د دے نظریئے نه مستثنیٰ وو- دا سیک سردار ډیر دوراندیش، هوښیار او چالاک انسان وو- د دے چلولی سردار دم او قدم دواړه په حساب وو- او هر کار به ئے د ډیر فکر نه پس او هر قدم به ئے د ډیر احتیاط نه پس اوچتولو - دغه وجه وه چه په لږه موده کښے د یو سلطنت په قاشولو کښے کامیاب شو- د شاه شجاع او شاه محمود د جنگونو په نتیجه کښے چه رنجیت سنگهه څومره فائده اوچتولے شوه- هغه خوئے احستی وه او د نورے فائدے په ځاؤ

---

(حاشیه له صفحه ۷۵۳) رنجیت سنگهه په کال سنه ۱۷۸۰ء کښے زیږیدلے وو-

کښې ناست وو. چه په کال ۱۸۱۸ء کښې د فتح خان د مرګ واقعه اوشوه. چه عظیم خان د ورور د بدل اخستلو په غرض د کشمیر نه د کابل په لور لاړ. نو رنجیت سنګه هم په هغهٔ پسې راروان شو. اګر چه د دواړو په مقاصدو کښې فرق وو. د عظیم خان په مخکښې د خپل ورور د قاتلانو نه د هغهٔ بدل اخستل وو. او د رنجیت سنګه په مخکښې د فتح خان د قاتلانو د سلطنت نه د خپلې خوښې یوه ټوټه بیلول وو.

لکه چه وړاندې شوی دی د فتح خان د مرګ نه پس چه د هغهٔ ورورنو د ملک په مختلفو حصو قبضه اوکړه. نو په پیښور او نورو ملحقه علاقو باندې سردار یار محمد خان حکومت قائم کړو. او چه عظیم خان د پیښور نه کابل ته لاړ نو رنجیت سنګه په اټک راپورې وتو. په یار محمد خان کښې نهٔ خو د رنجیت سنګه د مقابلې طاقت وو. او نهٔ ئې د هغهٔ د مقابلې خواهش کړلو. نو پیښور ئې خالی پرېښو. رنجیت سنګه په پیښور کښې د څه بندیز نه بغیر داخل شو. په دغه ورځو کښې رنجیت سنګه په خپل ځان کښې د پیښور د مستقلې قبضې توان نهٔ لیدو. نو د علاقې جاج ئې واخست. پیښور او د خوااوشا علاقې ئې اولوټلې او بیرته لاړ. ولې اټک ته ئې مخامخ په خیراباد کښې ئې یوه بله قلا اباده کړه. او په هغې کښې ئې یوه فوځي دسته د حفاظت په غرض پرېښوه. د سیکانو د تلو نه پس یار محمد خان بیا پیښور ته راغې. چونکه په یار محمد کښې د سیکانو د مقابلې طاقت نهٔ وو. او عظیم خان د کابل په معاملاتو کښې بوخت وو نو رنجیت سنګه چه لاهور ته اورسیلو نو په بې غمه زړهٔ د کشمیر د تسخیر په تابیا کښې لګیا شو. د کشمیر قبضې ته هغه ډیر لیواله وو. چنانچه هغهٔ په ۱۸۱۵ء کښې هم په کشمیر حمله کړې وه. ولې دغه وخت ئې د عظیم خان د لاسه ذلیل شکست موندلے وو. ولې هغهٔ داکیې د ملتان په فتح کولو پوره کړو. دغه وخت د کشمیر د حملې د پاره حالات سازګار وو. ځکه چه محمد زی ورونړه په خپلو خو لو کښې ډوب وو. رنجیت سنګه په ۱۸۱۹ء کښې په کشمیر حمله اوکړه. په دې حمله کښې ډوګره راجا ګلاب سنګه هم د هغهٔ ملګرے وو. جبار خان د سیکانو مقابله اوکړه. ولې خوند ئې او نهٔ کړو. او کشمیر د سیکانو لاس ته راغې.

په کشمیر کښې د مسلمانانو حکومت په ۱۳۵۱ء کښې قائم شوے وو. دا صوبه څه کم دوه سوه کاله د مغلو په سلطنت کښې شامله وه. او په ۱۷۵۲ء کښې د احمد شاه په وخت کښې د سدوزو په حکومت کښې شامله شوه. او شپږ اویا کاله

پس د دوئ د سلطنت نه او شلیده. د کشمیر د فتح نه پس رنجیت سنگه د اباسیند نه په نمرخاتهٔ د سدوزو د سلطنت نورے علاقے هم فتح کړے. او ډیره غازی خان او ډیره اسماعیل خان ئے هم د خپل ریاست سره اوګنډل. د ډیره اسماعیل خان علاقه ئے هم د دے علاقے زوړ حاکم احمد خان ته د خراج ادا کولو په وعدهٔ بیرته پرے ښوده. د حسن ابدال نه په قطب د هزارے قبائیل هم هغهٔ په خپل اطاعت کښے راوستل. او دغه شان ئے د اباسیند نه په نمرخاتهٔ د کال ۱۸۲۱ سنه پورے خپل حکومت ښهٔ مضبوط کړو.

# د بارکزو سلطنت

لکه چه وړاندے مو وئیلی دی په کابل کښے د محمد عظیم خان د مصروفیاتو نه رنجیت سنګهـ دا فائده واخسته چه په پېښور ئے حمله اوکړه - ښارئے لوټ کړو - او بیا ئے په خیرآباد کښے یوه قلا تعمیر کړه - او د کشمیر د تسخیر په مهم کښے ګیا شو - او هغه ئے هم فتح کړو - محمد عظیم خان چه د رنجیت سنګهـ د دے دست درازیو نه خبر شو نو هغهٔ په ډیرے تادئ او تندئ خپل طاقت راغونډ کړو - او په کال سنه ۱۸۲۳ء کښے د رنجیت سنګهـ د مقابلے په غرض پېښور ته راغے - د هغهٔ په ملګرو کښے سیک سردارے سنګهـ اټاری والا هم وو - چه د هغهٔ ذکر مو د حاجي فیروزالدین د حرم د لوټلو په واقعه کښے کړے دے - عظیم خان په خیرآباد باندے د حملے تابیا کوله - چه عین په دغه موقعه د کابل واقعاتو هغه دے ته پرے نښودو او بیرته کابل ته لاړ د محمد عظیم خان دے ناکامے پیشقدمئ رنجیت سنګهـ نور هم بیدار کړو - هغه بیا د پېښور په لور راروان شو - دا ځل هغه بیا د سیاست نه کار واخست - په سردار یار محمد خان ئے د حملے دبکه اوکړه - او هغه ئے د خراج په ورکولو اماده کړ - د رنجیت سنګهـ دا مدعا وه چه په دے دستور به هغهٔ ته په پښتنو باندے د حکومت کولو موقعه هم حاصله شي - او د سردار پائنده خان په کورنئ کښے به بے اتفاقئ هم پیدا شي - او د هغهٔ دا خیال درست وو - د عظیم خان ټول ورونړه په خپل مینځ کښے یو بل ته بدنیته وو - او د عظیم خان د اقتدار په زیاتوالی یو هم خوشحال نهٔ وو - د یار محمد خان په زړهٔ کښے دا ویره هم وه چه که عظیم خان د ډیر طاقت خاوند شي - نو ما به د پېښور د حکومت نه محرومه کړی - دغه وجه وه چه هغه د رنجیت سنګهـ خراج منلو ته اماده شو - او په دے خراج کښے ئے رنجیت سنګهـ ته په سازوسامان اراسته د نسلی اسونو ورکولو وعده اوکړه - رنجیت سنګهـ ته یار محمد خان د خپل مطلب سرے معلوم نشو - او هغهٔ د دهٔ په لوظ مطمئن شو - او بیرته لاهور ته لاړ -

لرے ورځ پس رنجیت سنګه ته دا معلومه شوه - چه عظیم خان دیارمحمد خان په دے بزدلئ ډیره ناراضګی ظاهره کړی ده - او هغه په خپله د رنجیت سنګه مقابلے ته راروان دے - رنجیت سنګه هم د عظیم خان د مقابلے په غرض راروان شو - په بل لور یارمحمد خان د عظیم خان د راتلو نه وړاندے وړاندے پیښور پرینښودلو - او د سوات یوسف زو ځنه لاړ - یارمحمد خان په دے خبره ښهٔ پوهه وو چه د سیکانو د خراج منلو دا ذلیل فعل به زاته ورور معاف نهٔ کړی - به هر حال عظیم خان هم پیښور ته راورسید. او رنجیت سنګه هم د یو لښکر سره د هغهٔ په ګودر راپورے وتو -

د عظیم خان فوځ د سیکانو د مقابلے جوګه نهٔ وو - او دا سے معلومیږی - چه هغه په خپلو ورونو هم بے اعتباره وو - د غه وجه وه چه هغه د سیکانو مقابلے ته خپل فوځونه او نهٔ لیږل - بلکه د دے په ځائے د پښتنو قبائیلو نه د مرستے خواست اوکړو او هغوی ته ئے د سیکانو سره د غزا او جهاد دعوت ورکړو - د دے په جواب کښے یوسفزی ، ختک او د وادئ پیښور نور پښتانهٔ قبائیل د سیکانو سره د جهاد په غرض تیار شول - د پښتنو قبائیلی لښکر د سید اکبر شاه (چه د پیر بابا نمسے وو) په مشرئ کښے د شلو زرو په شمیر کښے د پیر سباق (تحصیل نوښار) په مقام مورچه شو - د دے قبائیلی لښکر نه علاوه د پښتنو یو بل لښکر د ترکی (نوښار) په غونډئ هم مقیم وو -

محمد عظیم خان د خپل فوځ سره د نوښار د موجوده چاونړئ په مقام د سیند په سویلی غاړه ډیره شوے وو - په ۱۴ مارچ ۱۸۲۳ء د پښتنو او سیکانو ترمینځ دا مشهور جنګ شروع شو - مهاراجه رنجیت سنګه د خپل فوځ څه لږه حصه د عظیم خان د فوځونو د مقابلے په غرض پرینښودلی وه - او په خپله د فوځ د یوے لوئے حصے سره د پښتنو غازیانو مقابلے ته په سیند پورے وتلے وو - چه په پیر سباق او ترکئ غونډئ مورچه شوی وو - رنجیت سنګه خپل اصلی مدعیان پیژندل - هغهٔ ته دا معلومه وه - چه اصل مقابله د چا سره ده - ځکه خو هغهٔ خپل ټول فوځئ طاقت د غازیانو په مقابله وراچولے وو - د پښتنو غازیانو او سیکانو ترمینځه لاس په لاس جنګ شروع شو - په دے موقع د یوسف زو او ختکو ځوانانو داسے بے مثله بهادری ښکاره کړه - چه د سیکانو په منظم او قواعددان فوځ کښے ئے لارے جوړے کړے - سیکانو د خپل پوره طاقت سره په پښتنو ځلورحملے اوکړے - ولے په هره حمله کښے دوئ پښتنو په شا کړل - په بنځم ځل رنجیت سنګه د خپلے محافظے دستے سره په حمله کښے شامل شو - او اخرئے په ډیر زیار

د پیرسباق غونډۍ د غازیانو نه اونیوله۔

یو طرف ته دا خونړے جنګ جاری وو۔ او بل طرف ته عظیم خان د خپل فوځ سره دیو خاموش تماشائي حیثیت اختیار کړے وو۔ هغه نه خو د غازیانو مدد ته په سیند ور پورے وتو او نهٔ ئے د سیکانو په توپخانه حمله اوکړه۔ چه هم د هغه ځائے نه ئے په غازیانو ګوله باری کوله۔ کوم ځائے چه عظیم خان د خپل فوځ سره مقیم وو۔ بله ورځ بیا سره د دے چه غازیانو ته شدید نقصان رسیدلے وو۔ هغوی د سیکانو مقابلے ته د خپل پیرزاده اکبرشاه په ماتحتۍ کښے په ترکئ غونډۍ ځانونه تیار کړل۔ ولے عظیم خان ته د غازیانو د جنګ تماشے هم خوند ور نهٔ کړو۔ او هغه شپه په شپه په چپه خُله د خپل فوځ سره د موقع نه پښے اسیتلے وے۔ ولے غازیان پرے خبر نهٔ وو۔ غازیانو د خپل پروګرام مطابق جنګ شروع کړو۔ ولے غرمه غرمه دوئ ته د عظیم خان د تیښتے حال معلوم شو۔ په دے خبره د دوئ هغه موهومه اسره هم خوره شوه۔ او میدان سیکانو ته پاتے شو۔

په دے موقع د عظیم خان د دے رویے اختیارولو په حق کښے هیڅ معقول عذر نهٔ شی پیش کیدلے۔ په اصل کښے د دے وجه دا وه چه د عظیم خان ورونړو یار محمد خان او سلطان محمد خان د رنجیت سنګه نه رشوت خوړلے وو۔ او هغوی د رنجیت سنګه سره تار نیولے وو۔ د یار محمد خان او سلطان محمد خان په زړونو دا نهٔ ځائیدله چه عظیم خان دِ په سیکانو بریالے شی۔ او په ملک او قام کښے دِ د یو مجاهد اعظم حیثیت اومومی۔ په بل لور عظیم خان هم د ورونړو په نیت اګاه وو۔ او د هغهٔ سره دا ویره وه چه که په سیکانو حمله اوکړم او فوځ ئے تیښته اوکړی۔ نو د خپلے خزانے او حرم نه به لاس ااووینځم۔ هغهٔ د ځپلے خود غرضۍ په بِنا خپله خزانه او خپل حرم د غازیانو د پاکے وینے نه غوره اوګڼل۔ او دیو تماشګیر کارئے اوکړو۔ د عظیم خان او د هغهٔ د ورونړو د دے بزدلۍ او خود غرضۍ پښتنو غازیانو ته لوئے نقصان اورسولو۔ که چرے عظیم خان په سیکانو لږے هسے پښے هم ترپولے وے نو هغه وخت د غازیانو جوش وخروش دومره زیات وو چه د سیکانو د پاره به د هغوی وهل ډیرګران شوی وو۔ او ممکنه ده چه د سیکانو فتنه بیا د اټک نه نهٔ وے راپورے شوے۔

د سیکانو او پښتنو دا جنګ چه د « نوښار » یا د پیرسباق د جنګ په نامه مشهور دے د وادئ پیښور د پښتنو د جرأت او شجاعت یو ژوندے مثال دے۔ په دے جنګ کښے چه پښتنو غازیانو څومره نقصان موندلے دے د هغ یوه سرسری اندازه د هغ وسیع

مقبرے نه لګیدلے شي۔ کومه چه د کابل ریور د ریلوے اسټیشن نه په قبله د ترکئ غونډئ سره تراوسه موجوده ده۔ د نوښار د دے جنګ په حقله د همغه زمانے یو اولسی شاعر (مویزی) یوه چاربیته وئیلی ده چه د همغ نه د پښتنو د جوش، د عظیم خان د کردار او د پښتنو د عظیم نقصان اندازه لګیدے شي۔ په دے غرض ئے زه دلته د ښاغلی قاضی عطاء الله خان مرحوم "د پښتنو تاریخ" نه سره د شکریئے درج کوم :-

## د مویـزی چاربیته

قاصد د بادشاه راغے یوسف زی اولړزیدهٔ
په نیت د غزا لاړشه په نوښار اوړیدهٔ
قاصد د بادشاه راغے رالیږلے عظیم خان
داوله ئے جرګه کړل ملایان او ملکان
دارو ګولئ په مادی درکوم به خرڅ تاوان
الفاظ ئے خوږ شکر وو په هرچا ښهٔ لګیدهٔ
الفاظ ئے خوږ شکر وو پر راضی یوسف نامه شو
راتلل به ځائے ترځائے نه نه ئے خوب نهٔ ئے دمه شوه
خپل کور په هرچا اورشهٔ پیښه داسے علامه شوه
توکل دعائے اوکړه سیلابو نه بهیدهٔ
توکل دعائے اوکړه اکوزی وو په زرګونه
راتلل ئے مشران د سیند په غاړه لکه غرونه
د غرو ئے خلق وے دوشالے ئے په سرونو
د حسن په صفت ئے بادشاهان هوَسیدهٔ
د حسن په صفت به ئے لګیا یم ځو ځو کاله
ګلونه د ګلاب وو ځوان توئے کړهٔ زما لاله
ساتل به میاند و خوئندو الله وروستل قضاله
اجل ئے په ډیریځو وو دلته نسے لوئیدهٔ
اجل ئے په ډیرو وو اشیځو اوکړله توره
رحمت په سلارزو شه مدعائے کړه ظهوره

نزان دی ګډ اے زی سرونه نهٔ اړی له تربوره
خاونده خدو خیل له پینبیے کاله تنبستیدہ

د پینبیے نه چاراوځ نوریزی دی اګد اران
مدام ئے صف جنګی وی د اونبکلو په میدان
الله نوم چه یهٔ واخست تړ به مات شولوسیکان
د نبنخو د ګمنډه ئے رنجیت اووبیریدهٔ

د نبنو په ګمنډ کښے شهید شوے دے پیرخان
د قام په مخکښے مړشهٔ فیض طلب او الطافخان
شیرو او محب الله وروڼه میرات شو سرورخان
سمعیل زی د لوئے ملا سره لعلونه تویٔیدهٔ

سمعیل زی د لوئے ملا په مخکښے مړهٔ شو امانت
معصم او عادل شاه دِ الله کاندی په جنت،
او نبکلو جنګ ئے اوکړو په میدان کښے بنهٔ ساعت
په مرګ ئے په اسمان کښے ملائیک او ژړیدهٔ

په مزکه ژاړی جونه ملائک دی په اسمان
یو چرق په ناره پریوت اخوند خیل شو بندیوان
د مرګ پورے پلار د حضرت دین کوی ارمان
میرات ئے پالنګونه په میدان خاوره کیدهٔ

میرات ئے پالنګونه په میدان شولو یواځ
ژاړی خوئندے میاندے کلیے ئے کړے اغازے
د خاورو نه شوے لاندے هغه بنے ټکړیٔ د رازے
په صفت ئے مویزے لکه فولاد او بیشیدهٔ

صفت د یوسف زوکوم چه قتل ئے کړو خان
په مخکښے ئے تمام شو پیر ملا او صاحبزادګان
په دوزخ کښے به کفار وی په جنت کښے مومنان
هر بیت د مویزی لکه مرجان بیعه کیدهٔ

د نوښار د جنګ نه دوه خرابے نتیجے اوختلے ـ یو خو دا چه اباسیند نه په قبله د

پښتنو علاقه د سیکانو په قبضه کښې راغله - او د سیکانو د ظلمونو نه د پښتنو ویره ترهه لرے شوه - یار محمد خان د سیکانو خراج په غاړه واخستلو - او بله د عظیم خان د زړه چاوډون مرګ - عظیم خان هر څه چه وو ولے د هغهٔ د مشرۍ په وجه د هغهٔ ورونه په څرګنده د هغهٔ مقابلے ته نهٔ او دریدل - لیکن د هغهٔ د مرګ نه پس د پائنده خیلو سردارانو ترمینځه د خپل خپل اقتدار زیاتولو په غرض داسے شرمناک سازشونه شروع شول چه د هغې په نتیجه کښې په وادۍ پیښور د سیکانو مستقله قبضه راغله -

د نوښار د جنګ نه پس عظیم خان هم ډیره موده ژوندے پاتے نهٔ شو - بلکه د کابل په لاره کښې وفات شو - او خپله خزانه او خپل اقتدار ئے خپل ځوی حبیب الله خان ته اوسپارل په بل لور رنجیت سنګه د یو بریالی په حیثیت پیښور ته رااروان شو - او په لاره کښې ئے چه څه مخ ته راغلل هغه ئے تباه کړل - نه ئے په بنیادمو رحم اوکړو او نهٔ په ځناورو - خلق ئے اووژل - کلی ئے لوټ کړل - کورونه ئے وران کړل - او د تباهۍ او بربادۍ د یو یو طریقې په استعمال کښې ئے هم دریغ او نهٔ کړو - او چه پیښور ته راغے نو د بالاحصار قلا ئے په توپو اوڼړوله - د قلا دننه شاهي محل او نور عمارات چه د دے واقع نه څوارلس کاله اګاهو د انګریزانو د جرګے مشر ښاغلی ایلفنسټن پکښې د معاهدے په غرض د شاه شجاع سره ملاقات کړے وو - او د دے محل او عمارتونو د ښکلا او شان و شوکت ئے ډیره ستائینه کړې وه - د خاورو سره خاورے کړل - د پیښور شاهي باغونه چه په ښائست او ښکلا کښې ئے ثاني نهٔ لرهٔ - د رنجیت سنګه د سپاهیانو د لاسه ډاګه ډګلۍ شول - د پیښور د عمرونو شان و شوکت او د دے ښار د قدیم عظمت او ښکلا ټول نښے نښانے د رنجیت سنګه د لاسه تباه شوے چه سکها شاهي او د ځنګل بادشاهي تر اوسه هم معنی لرلے شي. د دوئ د ظلمونو نه نهٔ کورونه پاتے شول او نهٔ جماتونه - د پیښور ښکلے شاندار جامع مسجد چه د شهنشاه اورنګ زیب مشهور ګورنر مهابت خان په ۱۶۷۰ء کښې اباد کړے وو - او په هغه وخت کښې ئے د لاهور د شاهي جمات سره په ښکلا کښې سیالی کوله - د سیکانو د ناکردو نه وران ویجاړ شو - او کوم سلوک چه وروستو سیکانو په خپل لنډ دور حکومت کښې د دے جمات سره اوکړو - په هغې باندے انسانیت ته شرم ورځي په پیښور کښې د پخوانو یادګارونو د نیشتوالی یوه غټه وجه هم دا د سیکانو د ۱۸۲۳ء تباهۍ او بربادۍ ده -

رنجیت سنګه په پښتنو فتحه خو حاصله کړه ولے په هغهٔ کښې په پښتنو باندے د

حکومت کولو طاقت نهٔ وو. ځکه هغهٔ د یار محمد خان سره په خراج فیصله اوکړه. او د پېښور حکومت ئې بیا هغهٔ ته ورکړو. اګر چه ددې نه پس رنجیت سنګه دکوهاټ بنون او ډیره اسماعیل خان علاقې هم په خپل تصرف کښې راوستلې. ولې په دې صوبه باندې هغهٔ په مکمل اختیار قاشولو کښې چرې هم کامیاب نهٔ شو. د هغهٔ فوځونه به تل د پښتنو سره په جنګونو کښې بوخت وو. د نوښار د جنګ نه ایله یو کال پس په سنه ۱۸۲۷ء کښې د اباسیند د غاړې یوسفزی قبائیل د خپل پیرزاده سید اکبر شاه په ماتحتۍ کښې د رنجیت سنګه مقابلې ته بیا اوپاریدل. دا ځل رنجیت سنګه د دوئ مقابلې ته هری سنګه نلوه اولیږلو چه د رنجیت سنګه په ټولو جرنیلانو کښې په شجاعت او سفاکۍ کښې زیات مشهور وو. د «نارې» په مقام د یوسف زو او سیکانو جنګ اوشو چه په هغې کښې هری سنګه سخت ژوبل شو. هری سنګه د پښتنو د مدافعت په غرض د هری پور په مقام یوه قلا هم سازه کړه. هم په دغه ورځو کښې د وادئ پېښور په پښتنو کښې یو نوې مذهبي تحریک شور شو. چه د خپل حیرت انګیز عروج و زوال په وجه د پښتنو په تاریخ کښې ډیر شهرت لري. د دې تحریک بانی سید احمد شهیدؒ بریلوی وو.

# دَ سیّد احمدؒ بریلوی تحریکؒ

دا لوئے مجاهد په کال ۱۷۸۶ء کښې د هندوستان په بریلي نومے ښار کښې زیږیدلے وو - د وړوکوالی نه ئې د رواجي تعلیم سره مینه نۀ لرله - او چه په ښنۀ بد پوه شو نو په زړهٔ کښې ئې د جهاد مینه پیدا شوه. په دے غرض چه د فوجي قواعدو او جنګ د فنونو نه واقف شي. د نواب امیرخان والئ ټونک ملازمت ئې اختیار کړو - او د خپل پاک ژوند او ښو اخلاقو له کبله ئې د هغهٔ په فوځ کښې ډیر خواخوږي او معتقد پیدا شول. په هرځا یه د دهٔ نیکو اخلاقو او پاک ژوند اثر کیدو - په دے ورځو کښې د مسلمانانو حالت ډیر زبون وو - حکومت د دوئ د لاسه وتلے وو - ولے مذهبي اړخ ئې هم ډیر کمزورے شوے وو - او د اسلامي تعلیماتو په ځائے په رنګا رنګ رسمونو او رواجونو کښې بوخت وو - د ډیر غور و فکر نه پس سید صاحب د مسلمانانو د اصلاح لوئے کار ته ملا او تړله. د هغهٔ دا مقصد وو چه په مسلمانانو کښې بیا هغه اصلي او اسلامي اخلاق پیدا کړي - او بیا د دے سوچه مسلمانانو په کومک د غیر مسلم طاقتونو نه سیاسي ازادي حاصله کړي - او داسے حالات پیدا کړي چه د اصلي اسلامي حکومت قیام ممکن شي - په دے ورځو کښې مسلمانانو د حج د نهٔ اداکولو د پاره رنګا رنګ بهانے پیدا کړے وے - سید صاحب دا غوره اوګڼله چه د خپل تحریک اغاز د حج بیت الله نه اوکړي -

چنانچه هغه په کال ۱۸۲۲ء کښې د خپلو څلورو سوو معتقدینو او مریدانو سره حج ته لاړ - او د فریضهٔ حج د اداکولو نه پس څه درے کاله په حجاز کښې پاتے شو - او بیا په کال ۱۸۲۶ء کښې هندوستان ته راغے - او په دهلي کښې ئې استوګنه اختیار کړه - او د عملي جهاد په تابیا کښې لګیا شو - په دغه ورځو کښې په هند کښې د ستلج سیند پورے علاقه د انګریزانو په قبضه کښې وه - پنجاب سیکانو نیولے وو - او په دے علاقه کښې ئې داسے د ظلم حکومت قائم کړے وو چه د مسلمانانو د پاره د خپلو مذهبي امورو ادا

کول بیخي ناممکن شوی وو- د سیکانو اقتدار دا باسیند نه په قبله هم خورشوے وو- او د سردارانِ پېښور د خود غرضۍ له کبله د پښتنو علاقه هم د سیکانو د لاسه په خطره کښې پرے وتلې وه- داسے حالات وو- چه سید صاحب د خپلو پنځو سوو مریدانو په ملګرتیا کښې په کال ۱۸۲۶ء کښې د سند ھ او بلوچستان په لار قندھار ته راغے-

په قندھار کښې د سردار فتح خان په ورونو کښې پوردل خان سره د خپلو نورو سکه ورونو حکمران وو- په دے نیک کار کښې سید صاحب د دے سردارانو نه د امداد ډیره توقع لرله- لیکن د قندھار سردارانو د سید صاحب سره ډیره بے توجهي او بے رُخي اوکړه- او داسے رویه ئے اختیار کړه چه سید صاحب ئے د ټولو سردارانو د امداد نه نا امیده کړو- او د دے نه پس هغهٔ د خپل تحریک د کامیابۍ د پاره خپله توجه د اولس په لور اوګرځوله- د قندھار نه سید صاحب د غلجیو په علاقه راواوتلو- او د غزنۍ او کابل په لار په کال ۱۸۲۷ء کښې پېښور ته راغے- په پېښور کښې سردار یار محمد خان د رنجیت سنګھ د باجګذار په حیثیت حکمران وو- دے سردار هم د سید صاحب راتلل د خپل اقتدار د پاره ښهٔ او نهٔ ګڼل- او د دهٔ د مرستے نه ئے ځان اوژغورلو-

لیکن سید صاحب د پښتون اولس نه نا امیده نهٔ وو- هغهٔ ته دا معلومه وه چه په پښتنو کښې د خپلے ازادۍ د حفاظت جذبه ژوندۍ او د خپل مذهب سره د دوئ مینه څرګنده ده- دغه وجه وه چه سید صاحب د یوسف زو علاقے ته لاړ او د خدو خیلو په علاقه کښې د فتح خان سره چه په دغه وخت کښې د خدو خیلو د قبیلے یو با اقتداره خان وو- په پنجتار کښې مقیم شو- پښتانهٔ اګر چه د تاریخ په مختلفو دورونو کښې د هر حکومت د اقتدار نه ازاد راغلی وو- لیکن په دغه وخت کښې دوئ ته په یو لور د سیکانو ظالم حکومت خطره درپیښ وه- او په بل لور د پېښور سردارانو به د خپل مفادو په غرض د سیکانو مرسته کوله- دا داسے خطرے وے چه پښتانهٔ د دے د انجام نه نهٔ خوبے خبره وو- او نهٔ بے پروا- دغه وجه وه چه هرکله پښتنو ته د سید صاحب غوندے یو مخلص او نیک مشر په لاس ورغلو نو پښتنو د هغهٔ د مقاصدو سره په فراخدلۍ او روڼ تندی اتفاق اوکړو- او د خپل عزت او ناموس او د خپلے ازادۍ د حفاظت په غرض د هغهٔ د جنډے لاندے راجمع شول-

چه سید صاحب پنجتار ته راورسید نو د دے نه څه لږے ورځے پس د سیکانو

یو فوځ د یو سیک جرنیل ، بد ه سنګه سندیان والا ، په ماتحتۍ کښې په اټک راپورې شو۔ او د اکوړې په خوا او شاکښې دیره شو ۔ د دې سیک فوځ په راتلو د سردار یار محمد خان په زړه کښې هم په خپل ځان باندې د خراج د زیاتیدو خطره پیدا شوه۔ نو هغه هم د خپل عرض د پاره د سید صاحب د مرستې وعده اوکړه۔ سید صاحب د خپلو مریدانو ، یوسف زو او نورو پښتنو غازیانو د یو لښکر سره د سیکانو مقابلې ته راروان شو۔ په دې موقع یار محمد خان هم په ظاهره کښې د غازیانو د مرستې په عرض د خپل فوځ سره د پیښور نه راووتلو ۔

د سیکانو او سید صاحب په مشرۍ کښې د غازیانو ترمینځه جنګ د شید و په مقام اوشو ۔ د سخت جنګ نه پس د سیکانو جرنیل بد ه سنګه په جنګ کښې اووژلے شو۔ او سیکانو ته ډیر نقصان اورسیدهٔ ۔ لیکن په دې موقع سردار یار محمد خان بیا د غازیانو سره دوکه اوکړه۔ سیک جرنیل په یار محمد خان باندې د خراج د زیاتولو دپکه اوکړه۔ د دې ویرې نه یار محمد خان د سیکانو سره سازش اوکړو۔ او د جنګ میدان نه ځې پښې اووېستلې۔ او په تلو تلو کښې ځ د شکست چغې هم اوښکلې ۔ په دې چغو په غازیانو کښې هم بد نظمي پیدا شوه ۔ او هغوی په شا شول۔ لیکن د دې غدارۍ په بدل کښې سید صاحب یار محمد خان په دې خبره مجبور کړو چه هغه به د خپلو په علاقه د ائنده د پاره نهٔ بلوسی ۔

د سیدو د جنګ نه پس سید صاحب د ټولې علاقې دوره اوکړه۔ په هر ځائے کښې په ډیر جوش و خروش خلقو د هغهٔ پیغام واوریدهٔ ۔ او د سید صاحب ملګرتیا ته تیار شول۔ د دې نه پس هغهٔ په کال ۱۸۲۹ ئ کښې د پښتنو د علاقې یوه لویه جرګه راغونډه کړه۔ په دې جرګه کښې د عالمانو نه علاوه د پښتنو د علاقې ټول بااقتداره خانان او مشران هم شامل وو۔ په دې جرګه کښې عالمانو د اسلامي شریعت د جاری کولو فیصله اوکړه۔ او دغه خبره وروستو د دې تحریک د ناکامیابیدو باعث شوه۔

عالمانو خو د شریعت اسلامي د نفاذ فیصله اوکړه۔ لیکن په داسې کولو کښې هغوی د پښتنو د نفسیاتو او د هغوی د مخصوصو رسمونو رواجونو خیال او نهٔ ساتلو ۔ په داسې خلقو کښې چه د هغوی د ژوند ټوله اډانه په ځنې مخصوصو دودونو ، دستورونو او رواجونو قائمه وی ۔ په یودم د اسلامي شریعت احکام نافذ کول د ډیرې جلد بازۍ کار وو۔ هغوی ته پکار وو چه د اصلاح کار ځ په قلاره او درجه په درجه شروع کړے

وه - په دې موقع د پنجتار خان فتح خان د جرګې غړو ته د دې فیصلې نه د پیدا کیدونکو خطراتو په لور اشاره اوکړه - او ورته ئې اووئیل چه د سوونو کالو زاړهٔ رسمونهٔ رواجونه په یو وار پرې منودل به د پښتنو د پاره ګران شي - او د دې نه به داسې اختلافات پیدا شي چه د هغې نه به اصل مقصد ته نقصان اورسي - د فتح خان دا وینا ډیره معقوله او په ځائې وه - ولې عالمانو د هغهٔ دې خبرو ته هیڅ اهمیت ور نهٔ کړو - او مذهب چه کوم اقتدار دوئ ته سپارلې وو - د هغې په استعمال کښې ئې د اعتدال نه کار وا نهٔ خستلو - او په خپله خبره ټینګ شول - او د دې نه ئې د اقتدار سوال جوړ کړو - نتیجه دا شوه چه د پښتنو ټولو با اثره خانانو دا فیصله د مجبورئ او د زړهٔ پاسه منظوره کړه - د دې نه پس په خانانو کښې هم اختلافات پیدا شول - او په دوئ کښې ځنې د خپل اقتدار په حفاظت کښې مصروف شول - او د سید صاحب نه ئې مخالفت اختیار کړو - د سید صاحب په دې مخالفینو کښې د هنډ خان ښادی خان قابل ذکر دې -

سید صاحب د پنجتار خان فتح خان سره استوګنه اختیار کړې وه - د نورو خانانو په نسبت هغهٔ د سید صاحب زیات معتمد وو - د دغه وجه وه چه د هغهٔ اقتدار هم د نورو خانانو په نسبت زیات وو - لیکن نورو خانانو به په دې وجه د هغهٔ سره بغض ساتلو - د دې باهمی بغضونو په وجه د خانانو ترمینځه اختلافات زیات شول - په دغه ورځو کښې د زیدې خان اشرف خان چه د سید صاحب ملګرې وو وفات شو - د هنډ خان ښادی خان د سیکانو سره ساز باز را واخست - او د پیښور د سردارانو سره ئې هم تعلقات قائم کړل - په دې ورځو کښې یواځې د پیښور سرداران د سید صاحب مخالف نهٔ وو - بلکه د هنډ خان ئې هم لوئې مخالف وو - او د دهٔ په وجه نورو خانانو هم د اسلامی شریعت په نفاذ کښې بندیزونه پیدا کول - سید صاحب د دې مخالفتونو علاج دا تجویز کړو چه په هنډ ئې حمله اوکړه - په جنګ کښې ښادی خان اووژلې شو لیکن په دې موقع سید صاحب دا غلطی اوکړه چه د ښادی خان اهل وعیال ئې هم بندیوان کړل - دا یو داسې کار وو چه د ښادی خان هغه خپل خپلوان چه تراوسه د سید صاحب ملګری وو - هغوی هم په دې خبره د سید صاحب نه ناراض شول - او د بدل اخستو په تابیا ئې شروع اوکړه -

د ښادی خان ورور امیر خان د خپلو خپلوانو او نورو خانانو نه د مرستې سوال

اوکړو - او د پېښور سردار یار محمد خان سره ئې هم اولیدل - سردار یار محمد خان خو دے خبرے ته تږے ناست وو - چه پښتانهٔ د سید صاحب د مرستې نه لاس په سر شی - سمدستی د امیر خان په کومک د خپل لښکر سره د پېښور نه را روان شو - د ځریانئ ( تحصیل پېښور ) سره نزدو د بډرئ نالے په غاړه د یار محمد خان او د سید صاحب تر مینځه جنګ اوشو - په جنګ کښے یار محمد خان ژوبل شو - او دغهٔ تیښته اوکړه - ولے د زخمونو د شدت له کبله هم په لاره کښے مړ شو - د سردار یار محمد خان ډیر ساز و سامان د غازیانو لاس ته راغے - ( ستمبر ۱۸۲۹ئ ) - د سردار یار محمد خان نه پس د دغهٔ ورور سردار سلطان محمد خان د پېښور حاکم شو - په دے موقع اګرچه سید صاحب په سردارانِ پېښور بریالے شو - لیکن د پښتنو په مینځ کښے چه کوم اختلافات پیدا شوی وو د دغې نه ډیرے خرابې نتیجې برآمد شوے - د دے جنګ ذکر نور دین اخون په خپله یوه چاربیته کښے داسے کړے دے :-

## دِ نــور دین اخــون چاربیته

روان شو یار محمد، سید اوباسی له پنجتاره  سید له برے ورکړے الٰهی پرورد ګاره
راغے امیر خان سرداره دربه کړمه زر  له ما سره روان شه یوسف زو ته برابر
سید را نه ملک واخست راته اوکته دوتر  زر پاسه روانیږه سستی مه کوه سرداره
سردار وئیل وطن به درله اوګټم امیره  لاسونه دے د تا سره را ښکلی دی په ږیره
تاته به د سید کړمه له هنده هوا ګیره  په مخکښے پیش خانه صبا ته کوچ کوم له ښاره
روان شو یار محمد د امیر خان سره یارانو  توپونه تلهٔ په ګاډو زنبورک په شترانو
بے عدله بادشاهی شور نشته د خوارانو  دیره شهٔ په نوښار ستر کے ئې سرے دی له خماره
نوښاره ځنے لاړ شهٔ په زړه مینه مقام  په تهولو یوسف زو باندے خوبونه شوم حرام
سید ورته زیده کښے جوړ وهٔ د عقل دام  مصری باندے له ورغے خبر شهٔ له اسراره
مصری باندے نه تیر شو نورے کم شوله کوکبه  غاونده یوسفزی مندړ بچاؤ کړے له غضبه
ویریږمه چه مات نهٔ شی د توپو له دبدبه  سید وئیل ډیر شکر دے چه راغلے زما دپاره
سردار د یوسف زو سره محلوے کړے خبرے  پټ پټ سره جرګے قیصے ئې واوریدے حاضرے
وئیلے یوسف زو سید به کړو د ځانه لرے  چپاوُ ئے په لښکر اوکړو ماته ئې شوم ناقراره
پیدا به نهٔ شی بیا د یار محمد غوندے سردار  خزان پرے باندے راغے شه په زمکه تار په تار

د ورور کړته به او کړی د هر چا پرې اعتبار — که راشی دوست محمد او رحمدل له قندهاره
قاصدځ و ولیږلے پیر محمد پسے د وخته — رادرومه په جلتئ خبره پینبه شوله سخته
تاو یړی حسن خان لکه د سرو ګلو نو لښته — بلبلے سرے منګلے مروړی وران شولے دیاره
اسونه زنبورک، شهین، خیے شوے ورنه پاتے — خټک، خلیل، مهمند ترے پیاده راغلهٔ په ماتے

ماتهٔ د یار محمد د خلقد اد شولے میراتے
ساته ځان نور دینه! د سیدانو له ازاره[1]

سید صاحب چه د یار محمد خان او نورو مخالفو خانانو په جنګ کښے بریالے شو نو د دے نه پس ئے د خپل امارت او د شرعی حکومت اعلان اوکړو- په ټوله علاقه کښے ئے د عشر ټولولو د پاره خپل اهلکاران مقرر کړل- لیکن په دے خبره د سید صاحب مخالفت درپرده نور هم زیات شو- پښتنو خانانو ته خپل اقتدار په خطره کښے معلوم شو- د دے نتیجه دا شوه چه د عشر وصولی به په اسانه نهٔ کیدله- ورو ورو د سید صاحب سره د پښتنو خانانو تعلقات دومره خراب شول چه د دے بنیاد په اخلاص او وفادارئ قائم پاتے نهٔ شو- د دوئ ترمینځه د دمغه څوانی اعتماد او اعتقاد فضا په بغض او کینه بدله شوه- دا خانان محض د سید صاحب د ویرے او غلبے په وجه غلی وو- ولے په زړونو کښے ئے مخالفت جړے نیولے وے- په دے وخت کښے یو طرف ته سید صاحب خپل ځان د ټولے علاقے امیر ګڼلو- په بل لور د پیښور سردارانو د دے علاقے د حکومت دعوی! نهٔ پرے ښودله- د سید صاحب او پښتنو خانانو په مخالفت کښے د سردار سلطان محمد خان لویه برخه وه- سردار سلطان محمد خان د سید صاحب مقابلے ته تیارئ کولے- اخر سید صاحب هم د دهٔ سره د خبرے رټولو په غرض تیاری اوکړه- او د خپلو مریدانو د یو لښکر سره ئے په کال سنه ۱۸۳۰ کښے په پیښور حمله اوکړه-

سردار سلطان محمد خان د سید صاحب مقابلے ته ټینګ نهٔ شو- د پیښور نه اوتښتیدلو په پیښور د سید صاحب قبضه راغله- د دے نه پس سید صاحب د خپلے نامے سکه هم جاری کړه- او د شرعی حکومت اعلان ئے اوکړو- خپل قاضیان او مفتیان ئے مقرر کړل- په پیښور باندے د سید صاحب قبضه دوه میاشتے وه- په دے عرصه کښے سردار سلطان محمد خان د سید صاحب

---

[1] " د نور دین چار بیتے " ص۱۰۱

په خدمت کښې به جرګې لیږلے راليږلے - اخر سردار سلطان محمد خان د سید صاحب امارت منلو ته تیار شو- د ارباب فیض الله خان چه د سید صاحب یو مخلص مرید او ملګرے وو. په ذریعه د سردار سلطان محمد خان او سید صاحب تر مینځه صلحه اوشوه- سلطان محمد خان سالانه یو لک روپئ خراج په ځان اومنلو- د دے نه پس سید صاحب پنجتار ته راغے.

د پیښور فتح د سید صاحب په مخالفینو کښې نوره بیداری هم پیدا کړه- اودرپرده مخالفت نور هم زیات شو- په دے فتح که په یو لور د سردار سلطان محمد خان اقتدار ته لویه صدمه رسیدلی وه- نو په بل لور د دے په وجه د سیکانو سره هم خطره پیدا شوی وه - او پښتانهٔ خانان هم په ځان ویریدلی وو - دے مشترکه خطرے د سید صاحب مخالفین په خپل مینځ کښې درپرده متحد کړل- او د دے نتیجه دا شوه چه د سید صاحب برخلاف د سازشونو یو لوئ جال خور شو- سردار سلطان محمد خان د سید صاحب برخلاف د ځنې عالمانو نه فتوے حاصلے کړے . په سید صاحب د بد اعتقادئ الزامونه اولګولے شول- د هغهٔ برخلاف د انګریزانو د یو جاسوس پروپیګنډه شروع شوه- دا فتوئ او د بد اعتقادئ خبرے په اولس کښې خورے کړے شوے- یو طرف ته د سازشونو او پروپیګنډے دا مکروه جال خور وو- بل طرف ته د سید صاحب اهلکارانو هم د اعتدال نه کار نهٔ اخستلو- د اولس او خانانو سره د هغوی پالیسی ډیره بے سلیقه او اوچه کلکه وه- د دے نتیجه دا شوه چه ډیرے رازدارئ د سید صاحب د اهلکارانو او معتقدینو د قتل سازش په یو وخت او یو شپه مکمل شو- په مقرره شپه په پیښور کښې د سردار سلطان محمد خان په اشاره ارباب فیض الله خان او د سید صاحب مقرر کرده قاضیان اومفتیان اوو ژلے شول - د غه شان د وادئ پیښور په ټوله علاقه کښې په ډیرے بے دردئ مجاهدین قتل شول- او د مکرو فریب دا تور داغ د پښتنو په لمن تر قیامته پاتے شو-

سید صاحب د دے واقع نه په پنجتار کښې خبر شو- او په هغهٔ د دے افسوسناکے واقع دومره خراب اثر اوشو چه هغهٔ سمدستی د پښتنو د علاقے نه کډه اوکړه- هزارے ته لاړ- او په ۶ رمئ سنه ۱۸۳۱ء د بالاکوټ په مقام د سیکانو سره په یو جنګ کښې د ارباب بهرام خان او د خپلو نورو جانبازانو سره شهید شو- او دا شی ژوند ئے حاصل کړو- په دے ډول د پښتنو په علاقه کښې دا مذهبی تحریک چه په ډیره لږه موده کښې ئے عروج حاصل کړے وو- عملاً ختم شو-

څومره زر چه دا تحریک په پښتنو کښې مقبول شوے وو- او څومره په تیزئ چه دے

زوال اُوموند لو ـ د دې نه د پښتنو د قبائيلي نظام حيات رنګا رنګ خصوصيات څرګندېږي ـ د پښتنو دا يو څرګند خصوصيت دې چه کله دوئ ته يو داسې ګرانه پېښه شي چه په هغې کښې د دوئ د قامي هستۍ د فنا کيدو خطره وي ـ او په دغه وخت کښې دوئ ته يو داسې مشر په لاس ورشي چه د هغهٔ په ذات کښې دوئ د قبيلې قامي هستۍ د محافظت ضمانت ليدې شي نو سمدستي د هغهٔ په آواز راغونډ شي ـ د هغهٔ په اصولو امنا او کړي ـ او د حصول مقصد په لاره کښې هرې قربانۍ ته تيار شي ـ او قربانۍ اوکړي ـ او د دې قربانيو په وجه کاميابۍ ته نزدې شي ـ د دوئ د دې غير معمولي قربانيو په وجه د دوئ مشرهم د خوشحالۍ نه په جامو کښې نهٔ ځائيږي ـ د څه وخت د پاره د دوئ ترمينځه اندروني اوکورني بغضونه او حسدونه هم دپ شوي وي ـ او د يو مشترک مقصد د حصول په غرض دوئ د خپلې ذاتي پرې جنبې ، کورنۍ اختلافات او تعصبات هير کړي وي. او داسې معلوميږي چه د مقصد په لور دوئ خپل مزل رالنډ کړې دې د خپلو معتقدينو په دې غير معمولي جانثارۍ او وفادارۍ د دوئ مشرهم د اعتدال د لارې نه بې ځايه شي او دغه وخت بيا په يو دم ټوله نقشه بدله وي ـ ځواني بغضونه اوکينې بيا رااولړزيږي. ګيلې مانې شروع شي ـ اختلافات او خود غرضۍ د وړاندې نه هم په تيزۍ او تندۍ راژوندۍ شي ـ او ټوله لوبه تالا والا شي ـ

د سيد احمد شهيد او د هغهٔ د ملګرو مقاصد ډيرا اعلٰي او نيک وو ـ د هغوي پيش نظر د اسلام خدمت وو ـ د هغوي دا اراده وه چه د سرحد او پنجاب زمکه د سيکانو د ظلمونو نه ازاده کړي ـ او په دې مقصد په پښتنو کښې مقيم شوې وو ـ پښتنو هم په دې مقاصدو کښې د هغهٔ مرسته اوکړه ـ ډلې ډلې پښتانهٔ د هغهٔ مريدان شول ـ او بې شماره پښتانهٔ د هغهٔ په وينا د جهاد ميدان ته رااوځل ـ او د هغهٔ په حکم ئې سرونه ورکړل ـ د دوئ د دې سرفروشۍ په برکت سيد صاحب په خپل پيش نظر مقصد کښې په جزوي ډول کامياب هم شو ـ ولې افسوس دې چه د دې نه پس سيد صاحب او د هغهٔ ملګرو د دوراندېشۍ او احتياط په ځائې د جلد بازۍ نه کار واخست ـ او دا د دوئ د پښتنو د خصوصياتو او د هغوي د دودونو دستورونو او رواجونو نه د ناواقفيت نتيجه وه ـ د سيد صاحب رح په مقابله کښې د سيکانو او سرداران پېښور د وه لوئې سياسي طاقتونه موجود وو ـ سيد صاحب خود جنګ په ميدان کښې د پښتنو د مټو په زور په دې دواړو سياسي طاقتونو غلبه حاصله کړه ـ ولې د سياست په ميدان کښې ئې د دوئ نه شکست اوموند ـ

دا درسته ده چه د پښتنو اکثر رسمونه          رواجونه به د سید صاحب په نظر کښې[له] اسلامي شریعت نه خلاف وو. ولې دیو داسې قام د پاره چه د هغوی د تمدن اوقبائلي ژوند ټوله اډانه هم په دې دستورونو ولاړه وه. د سوونو کالو زاړه رسمونه په یو ځل پرې سبودل قطعي ناممکن وو. او د دې د اصلاح په لار کښې د ډیر غور و فکر ضرورت وو. سید صاحب ته پکار وو چه د خپل نوی نظام واګې د پښتنو خانانو او ملکانو په لاس کښې ورکړې وې. او په قدر قدر ئې د خلاف شریعت رسوماتو اصلاح ته لاس اچولے وې. په دې ډول به د خانانو په اقتدار کښې هم څه خاص فرق نۀ وو راغلے. او د اصلاح کار به هم درجه په درجه شوے وو. ولې د بد قسمتۍ نه سید صاحب دا کار داسې خلقوته حواله کړے وو. چه هغوی د پښتنو د ذهنیت او نفسیاتو نه بیخي نابلده وو. او هغوی د خپلو اختیاراتو په استعمال کښې د اعتدال نه کار نۀ اخستلو. او پښتانۀ که د سیکانو او سرداران پیښور د ظلمونو نه تنګ وو نو دغه وخت د دې نوی حاکمانو نه هم ترپوزې راغلي وو. دا خبره هم د فکر وړ ده چه پښتون اولس په عمومي ډول د اسلامي علومونه نا خبره وو. پښتنو په ابتدا کښې د سید صاحب مرسته د اسلامي خدمت په نوم کړې وه. لیکن هرکله چه د سردار سلطان محمد خان او سیکانو په سازش د سید صاحب برخلاف د بدعقیدګۍ خبرې خورې شوې او د هندوستاني عالمانو له خوا د سید صاحب برخلاف فتوې ورکړې شوې نو دغه وخت پښتنو ته هم د سید صاحب په مخالفت کښې خپل ځان ګرم نۀ ښکاریدو. بلکه هغوی خو د خپل خیال او فکر مطابق دا مخالفت هم د مذهب خدمت ګڼلو. به هر حال د دې نتیجه دا شوه چه د سید صاحب[رح] د مذهبي تحریک مخالفت هم په مذهبي رنګ کښې شروع شو. او دغه د دې تحریک د زوال باعث شو. د پښتنو په تاریخ کښې دغه شان مثالونه نور هم موندلې شي.

# د دوست محمد خان عروج

لکه چه مو وړاندې وویلې دي د عظیم خان نه پس د هغهٔ ځوئ حبیب الله خان د هغهٔ جانشین شو. اګرچه دې د خپل پلار سره د هغهٔ د ځنکدن په وخت کښې دالوظ کړې وو. چه د سیکانو سره به تر هغه وخت جنګ کوم ترڅو چه ې د خپل ملک نه نهٔ وی ایستلی ولې چه پلار ئې سترګې پټې کړې نو د پلار وصیت ته ئې شا کړه او شراب نوشئ ته ئې مخه کړه. او په عیاشئ کښې ښکیا شو. د دهٔ اقتدار تر هغه وخته قائم وو. ترڅو چه ئې د پلار دولت نهٔ وو ختم شوې. په دغه ورځو کښې د لوئ احمد شاه قائم کړې سلطنت په لویه خطره کښې وو. د سردار فتح خان ټول ورونه په خپل مینځ کښې په یو بل بې اعتباره او د خپل خپل اقتدار په زیاتولو کښې ښکیا وو. په دې وخت کښې حبیب الله خان په کابل کښې وو. یار محمد خان د خپلو ورونو سره په پیښور کښې د رنجیت سنګه د باجګذار په حیثیت حکمران وو. دوست محمد خان په غزنی کښې او پوردل خان او د هغهٔ ورونه په قندهار کښې وو. دې ټولو ورونو کابل ته سترګې خښې کړې وې. ځکه چه د صدر مقام په حیثیت به د دې ځائې د حکمران حیثیت هم په نورو کښې اعلیٰ ګڼلې شو. په کابل باندې د حبیب الله خان قبضه د ټولو ورونو په زړهٔ ناسازه وه. ولې یو بل ته په داؤ کښې ناست وو.

د ټولو نه اول دا انتظار دوست محمد خان لنډ کړو. هغه د غزنی نه د کابل د حملې په نیت را روان شو. حبیب الله خان نهٔ خو د جنګ مړنې وو. او نهٔ د هغهٔ سره په خزانه کښې مال وو. نو هغهٔ د قندهار د ترونو نه د مرستې خواست اوکړو. چنانچه پوردل خان ځل یو ورور شیر دل خان د هغهٔ مرستې ته رالولیږلو. د دوست محمد خان او شیردل خان په مینځ کښې مقابله اوشوه چه د دوست محمد خان په شکست ختمه شوه. دوست محمد خان جلال اباد ته په تیښته راغې. شیر دل خان په کابل قبضه اوکړه. او حبیب الله خان ئې د حکومت نه لرې کړو.

د پېښور سرداران چه په کابل باندې د شېردل خان د قبضې نه خبر شول نو په هغوی دا خبره سره او نهٔ لګېده. نو دوئ هم د شېردل خان مقابلې ته راروان شول. او د دوست محمد خان سره ئې ډله یوه کړه. دې شریکو ورونو د شېردل خان مقابله اوکړه. لیکن فیصله بیا هم اونهٔ شوه. اخرد ورونو په مینځ کښې یو اقرار نامه اوشوه چه د هغ له مخه په زور د ستور قندهار د پوردل خان دوئ سره پاتې شو. کابل سردار سلطان محمد خان ته ورکړے شو. او په غزنی اوکوهستان د دوست محمد خان قبضه اومنلې شوه. په دې تقسیم کښې غوره برخه د سردار سلطان محمد خان اورسیده. دغه وجه وه چه دوست محمد خان دا تقسیم د خپل ځان سره ناانصافي اوګڼله. او د دې فیصلې د ماتولو په تابیا کښې لګیا شو. لږه موده پس دوست محمد خان اقرار نامه شا ته کړه او د یو فوځ سره په کابل اوخوت. او سردار سلطان محمد خان ئې پېښور ته په شړلو مجبور کړو. دغه شان د غزنی د حکومت سره د کابل حکومت هم د هغهٔ لاس ته راغے. د کابل د فتحې په لړکښې د قزلباشو سردار محمد خان بیات چه د دوست محمد خان ماما وو. د هغهٔ ډېر مدد کړے وو. څه موده پس دوست محمد خان په جلال اباد هم قبضه اوکړه. او خپل حکومت ته ئې وسعت ورکړو. دوست محمد خان اګرکه په عمر کښې د دې ټولو ورونو نه کشر وو. ولې په سیاست، دور اندیشئ، زړورتیا اومستقل مزاجئ کښې په ټولو زیات وو. او دغه د هغهٔ دکامیابئ اسباب وو.

په کومو ورځو کښې چه د اباسیند نه په قبله د پښتنو په علاقه د سید احمد شهید د جهاد تحریک مخ په عروج روان وو. په دغه ورځو کښې محمد زی ورونه هم د یو بل دا قتدار د بیخ کنئ په ناپاکو کوششو نو کښې لګیا وو. په دې کوششونو کښې د پېښور او قندهار ورونه د دوست محمد خان په مخالفت کښې متفق وو. دوئ دا نهٔ شوه برداشت کولے چه د دوست محمد خان اقتدار دِ دومره زیات شي. چه هغه په ټولو ورونو بالادستي حاصله کړي. د محمد زو سردارانو د دې کورنئ اختلاف نتائجو ته شاه شجاع هم په لیواله زړهٔ انتظار کولو. او په دې طمع ناست وو چه کوندے که په دې شر کښې زما د خیر څه صورت پیدا شي. ولې د دوست محمد خان ورځ په ورځ زیاتیدونکی اقتدار د هغهٔ په زړهٔ کښې دا خوف هم پیدا کړو چه که دوست محمد خان د زیات اقتدار خاوند شي. نو زما د پاره به خبره نوره هم ګرانه شي. په دې سودا کښې هغهٔ په کابل باندې د حملې اراده ظاهره کړه. او په دې لړکښې ئې د رنجیت سنګه نه د فوځي امداد خواست اوکړو. ولې رنجیت سنګه

خو به په هره خبره کښې خپل غرض لټولو- هغه ترډیره وخته شاه شجاع ته د سنبینبو اسمانونه جوړکړل- او د سنه ۱۸۳۳ء پورې ئې په خوشې امید ونو کښې اوساتلو-

په دغه ورځو کښې د سند ده امیران د انګریزانو د نیک نیتۍ په باب کښې بدګمانه شوی وو- او د هغوی سره د خپلې ازادۍ خطره پیدا شوی وه- نو هغوی شاه شجاع ته دا دعوت ورکړو چه که هغه د بلوچستان په لار په کابل حمله اوکړی- او د کابل حکومت ترلاسه کړی نو د سند ده امیران به هغهٔ ته خراج ورکوی- د دې دعوت د شاه شجاع لیوالتیا نوره هم زیاته کړه- هم په دغه کال ایرانیانو د شهزاده عباس مرزا په ماتحتۍ کښې په هرات حمله اوکړه- د دې عمل د انګریزانو سره هم ویره پیدا کړه- چه که په هرات د ایران قبضه اوشی نو په هند باندې به د روس حمله یقینی شی په دې غرض هغوی دا فیصله اوکړه چه د افغانستان په تخت د انګریزانو د لاس یو کوډاګې بادشاه پکار دې- او هغه هم شجاع کیدې شو- ولې انګریزانو په ښکاره د شجاع مدد نهٔ کولو- نو دوی د هغهٔ مدد ته سیکان اولمسول- رنجیت سنګه هم د دې موقع نه فائده واخستله- او شاه شجاع د سیکانو سره یو ذلیله معاهده اوکړه . د دې معاهدې څوارلس شرطونه دی چه د ټولو نه مطلبی او اهم شرط ئې دا وو چې د-:

« شجاع الملک د خپل ځان ، د خپلو وارثانو او د خپلو جانشینانو له خوا د هغه ټولو علاقو د ملکیت د هر قسم دعوؤ نه دست بردارګیری کوی چه د اباسیند په دواړو غاړو اباد دی- او په دغ باندې فی الحال د رنجیت سنګه قبضه ده- د دې علاقو تفصیل دا دې- کشمیر د قطب قبلې او سویل د سرحدونو سره ، په شمول د قلعه اټک چهچه ، هزاره ، کهبل ، امب او د دې سره متعلقه علاقې چه د اباسیند په کسه غاړه دی او د دریائې سند ده په بنی غاړه پیښور سره د یوسف زو د علاقې ختک ، هشتنغر ، میچنۍ ، کوهاټ ، هنګو او هغه ټولې علاقې چه د پیښور ماتحت کنلې شی عین تر دره خیبر پورې بنون ، وزیرستان ، دوړ ، ټانک ، کوک ، کالاباغ ، خوشحال ګړه ، کوټ متن ، عمرکوټ او د هغ لاندې علاقه ، سنګور ، هرنډ ، دبل ، حاجی پور او د کچه درې واړه علاقې سره د سنګیر او د هغ سره علاقې ، د ملتان صوبه ، د دریائې سند ده په کسه غاړه ، دا علاقې به د مهاراجا رنجیت سنګه ملکیت او ماتحت کنلې شی »

د دې په بدل کښې سیکانو شجاع الملک ته څه فوځ ورکړو- په دې موقع انګریزانو د هغهٔ سره څه خاص امداد اونهٔ کړو- سوا د دې نه چه د څلورو میاشتو د وظیفې رقم

ځ پیشکي ورکړو- شاه شجاع په دې رقم څه هندوستاني فوځ تیار کړو- او بیا د دې فوځ او د سیکانو نه د حاصل کړه امداد په مرسته ښکارپور ته لاړ- او د امیران سند* نه ځ د افغانستان د خراج ګذارو حاکمانو په حیثیت د یو لوځ رقم مطالبه اوکړه- ولې د سنده امیران د غه وخت د خپلې خپلوانځ وعدې نه اوړیدلي وو- او د مطلوبه رقم د ورکولو نه ځ انکار اوکړو- چنانچه د امیران سنده او شجاع ترمینځه د روهړي په مقام جنګ اوشو- چه شجاع په کښې بریالے شو- او د امیران سنده نه ځ مطلوبه رقم حاصل کړو- په دې رقم هغه نور فوځ هم تیار کړو- او بیا قندهار ته لاړ- د قندهار په سردارانو کښې شجاع د مقابلې توان نه وو- نو اګرچه هغوی په زړونو کښې خو دوست محمد خان وینو ته تږي ناست وو- ولې چه قندهار د شجاع د لاسه محاصره شو- نو دوی دوست محمد خان نه د کومک خواست اوکړو- لیکن د دوست محمد خان سره دا ویره وه چه د شجاع په مرسته به انګریزان ولاړ وي- په دې غرض هغه د قندهاریانو ورونو د امداد نه اول انګریزانو ته یو استاذے اولیږلو- او دا پوښتنه ځ ترې اوکړه چه په دې حمله کښې د شجاع سره د انګریزانو څومره اشتراک دے- ولې انګریزانو د شجاع د عملي مرستې نه انکار ظاهر کړو- او داځ او وئیل چه ځ د اخلاقي مدد او همدردۍ نه نور زمونږ هیڅ مرسته هغه ته نه ده حاصله۔

دوست محمد خان چه د انګریزانو په نظریه څان پوهه کړو- نو د هغ نه پس د قندهار ورونو مدد ته لاړ- د شجاع او دوست محمد خان ترمینځه جنګ اوشو- د شجاع د فوځونو سالار کیمبل نوے یو انګریز وو چه په ډیرے بهادرۍ او جنګیدلو- او ژوبل ژوبل د دوست محمد خان په لاس کښې ګیر شو- په دې موقع شجاع د ډیرے بزدلۍ مظاهره اوکړه- او د هغه فوځونه په بد رنګه طریقه او تښتیدل- د تیښتې نه پس شاه شجاع د ډیرو ګړاؤنو او تریسکو تیرولو نه پس د کال ۱۸۳۵ء په پسرلي کښې دوه لاس دوه پښې لدهیانے ته راغ- د بادشاهۍ په دې خام هوس کښې شجاع ته خو څه په لاس ورنغلل البته د اباسیند نه په قبله نسرخاته هغه ټولے علاقے چه د احمد شاه ابدالي په سلطنت کښې شامل وے هغه ځ په خپل قلم او په خپل اقرار رنجیت سنګه ته حواله کړے- او رنجیت سنګه دا غوره اوګڼله چه د شاه شجاع دا تحریر د توره په زور نور هم مستحکم کړي- او عملاً دا علاقے په خپل سلطنت کښې شاملے کړي۔

چنانچه په کومو ورځو کښې چه د دوست محمد خان د خپلو قندهاریانو میرنو ورونه ود

د کومک په سلسله کښې د شجاع سره د جنګ په غرض قندهار ته تلے وو- او د کابل د لورې نه پيښور ته د امداد رارسيدلو څه طمع نۀ شوه کيدے- نو رنجيت سنګه د دے موقع نه فائده واخسته- او د جرنيل هری سنګه په ماتحتۍ کښې ئے د خيرآباد نه د سيکانو يو لوئ فوځ په پيښور باندے د قبضے په غرض اوليږلو- سردار سلطان محمد خان د سيکانو د مقابلے توان نۀ لرلو- نو په مئ ۱۸۳۴ء کښې په پيښور باندے سيکانو قبضه اوکړه- تردے وخته سلطان محمد خان د سيکانو د باجګذار په حيثيت د پيښور حاکم وو- ليکن د دے نه پس هری سنګه نلوه د پيښور ورو ميے سيک ګورنر مقرر شو- او سلطان محمد خان د خپلو ورونو سره د پيښور نه په تلو مجبور شو-

سردار سلطان محمد خان او د هغۀ ورونه چه د پيښور نه اووتل نو د بدے ورځ د کابل په لور روان شول- او چه جلال آباد ته اورسيدل- نو په زړۀ کښې ئے يو بله سودا راغله- په دغه ورځو کښې دوست محمد خان د شجاع سره په قندهار کښې په جنګ کښې لګيا وو- دوئ دا فکر اوکړو چه که په قندهار کښې دوست محمد خان باتيلات اوکړو- نو په کابل به موبز چغه اوباسو- په دے سودا کښې دوئ د قندهار د جنګ د نتيج په طمع په جلال اباد کښې کښيناستل- او د لښکر په تيارۍ کښې مصروف شو- دوئ په دے طمع ناست وو چه د دوست محمد خان د فتح خبر پراو شو- او د دوئ په اميد و نو بخ اوبه توئ شوے- دغه وخت دوئ له ناکامه بل چل اوکړو او دوست محمد خان ته د مبارکبادئ ورکولو په غرض کابل ته لاړل- دوست محمد خان اګرچه د دوئ په اراده ښۀ پوهه وو- ولے د کورنی اختلاف د کمولو په غرض ئے د دوئ ښۀ دارو مدار اوکړو-

په ظاهره کښې خو د پيښور ورونه هم د دوست محمد خان په کاميابئ خوشحال وو- او د قندهار ورونو هم د شجاع محيبت نه د دوست محمد خان په کومک او مېړانه خلاص شوی وو- او څکه په ظاهره کښې د دۀ احسان مند وو- ولے په زړونو کښې دا ټول د دوست محمد خان په دے عروج او اقتدار ډير ناراض وو- ولے د ناکامه اوبۀ وسئ نه چپ وو- په دے ټولو ورونو کښې دوست محمد خان يو داسے سړے وو چه د سدوزو د سلطنت ډيرے ټوټے هغۀ بيا راغونډے کړے وے- او د نورو د را غونډولو په تکل کښې لګيا وو- په پيښور باندے چه د تيمور شاه او شاه شجاع سرمائی دارالخلافه وه د سيکانو قبضه د پښتنو د مېړانے، طاقت او غيرت د پاره يو

داسې تازیانه وه چه دهغې دردهر یو پښتون ته رسیدلې وو- ولې دسیکانو نه ددې اهم مقام دستنولو دپاره دډیر طاقت او په خپل مینځ کښې دمکمل اتحاداو اتفاق ضرورت وو- او د دوست محمد خان وروڼه دې ته تیار نهٔ وو.

دوست محمد خان دخپلو وروڼو دبغضونو او کینو نه په ښهٔ شان خبردار وو- هغه په دې خبره ښهٔ پوهه وو چه که زهٔ بادشاه نوم په ځان باندې کیږدم نو دا به ې د وروڼو په زړهٔ ځائې نهٔ شي- او په څرګنده به ې مخالفت ته ملا اوتړی- سره ددې چه د غزني، کوهستان، کابل او جلال اباد علاقې دهغهٔ په قبضه کښې وې ولې تر دې وخته هغهٔ نهٔ خپل ځان ته بادشاه وئیلی وو- او نهٔ ې وئیلو ته تیار وو- خواوس د حالاتو دشدیدو تقاضو په رڼا کښې دا ضروری شوی وه چه یو سړې دِ دَ ټول قام د مشراو بادشاه په ډول اوټاکلې شي- ځکه چه دعام اولس همدردی او تعاون حاصلول ې ددې نه ناممکن وو- او ددې ناموافقه حالاتو درُخ بدلولو دپاره دټول قام اتحاد اومرسته ضروری وه- په دې عرض هغهٔ دخپلو سردارانو او عالمانو نه دیو خطاب اختیارولو په حقله مشوره اوکړه- او هغوی ورله د بادشاه خطاب اختیارولو مشوره ورکړه- ولې دوست محمد خان ورله اووې چه زهٔ دومره غریب یم چه یولوې سردار هم ځان ته نهٔ شم وئیلې نو بادشاه څه رنګ ځان له اووایم- او په دې خبره کښې دهغهٔ د ډیرې دانائۍ نه کار واخست- چه ځان ته ې بادشاه او نه وئیل- ځکه چه دا نوم به دهغهٔ نورو وروڼو نهٔ وو برداشت کړې- مګر د ډیر غور او فکر نه پس د عالمانو په مشوره هغهٔ په کال سنه ۱۸۳۴ء کښې دامیرالمومنین لقب اختیار کړو- او دخپل ریاست دانتظام په لوړهٔ توجه اوکړه- دهغهٔ اول کار دا وو چه دکوموکومو حاکمانو په دیانتدارئ دهغه شک وو- هغوی ې د خپلو عهدو نه لرې کړل- او دهغوی په ځائې ې خپل ځامن مقرر کړل- او دخپلې نامې »ضرب« ې هم اوچلولو- ددې نه پس هغه دپېښور د راستنولو په تکل کښې ټکیا شو-

په ابتداء کښې دوست محمد خان په خپل زړهٔ کښې د انګریزانو نه دخیر کلکه طمع لرله- دغه وجه وه چه د پېښور په معامله کښې هغهٔ د انګریزانو نه د مرستې خواست او کړو- او په دې سلسله کښې ې خپل یو وراره د یو غیر رسمی سفیر په ډول انګریزانو ته اولیږلو- او ورته ې خواست اوکړو چه که انګریزان د پېښور په معامله کښې زما امداد اوکړی نو زهٔ به د انګریزانو هر خدمت ته تیار شم- ولې تر دې وخته دافغانستان

په معاملاتو کښې براه راست مداخلت کولو ته د انګرېزانو نيت نهٔ وو. هغوی د دوست محمد خان د پاره د رنجيت سنګه ناراض کول غوره نهٔ ګڼل. نو سپو رجواب ئې ورکړو. او ورته ئې اووې چه دوست محمدخان دِ په خپله خپله معامله د سيکانو سره رنه کړی.

دوست محمد خان چه د انګرېزانو د مرستې نه مايوسه شو نو د خپلو متو په زور ئې د پېښور د فتح کولو اراده اوکړه. او په کال ۱۸۳۵ء کښې ئې د سلطان محمد خان په مشرئ کښې لس زره فوځ په دے غرض اوليږلو او په خپله هم ورپسې روان شو. سيکان چه د دوست محمد خان د فوځ کشئ نه خبر شو. نو د هغوی سره ډيره ويره پيدا شوه. ولے په دے موقع رنجيت سنګه هم د خپلے فطری چالاکئ نه کار واخست. هغهٔ د مقابلے د پاره فوځونه خو اوليږل. ولے هغهٔ ته د سلطان محمد خان خوئ بوئ معلوم وو. او د هغهٔ په کمزورتياګانو پوهه وو. رنجيت سنګه د دوست محمد خان او سلطان محمد خان ترمينځه د نفاق پيدا کولو اراده اوکړه. او په دے غرض ئې په ظاهره کښې د صلح په نيت خپل لوئے لوئے افسران لکه فقير عزيزالدين او جنرل هارلال وغيره د سلطان محمدخان کيمپ ته اوليږل. د دے سفارت اصلی غرض د سلطان محمد خان لمسول او د هغهٔ په زړه کښې د دوست محمد خان د ارادو په حقله بدګمانئ پيدا کول وو. د رنجيت سنګه استازی چه اورسيدل. نو د سلطان محمدخان سره په پټو او څرګندو جرګو کښې داسې بوخت شول چه دوست محمد خان د دوئ په رويه شکمن شو. او د دوئ د ګرفتارولو اراده ئې اوکړه. ولے د دے سفارت خپل کار کړے وو او سلطان محمد خان ئے خپل کيمپ کښې اچولے وو. په دے موقع سلطان محمد خان بيا د خپل ورور دوست محمد خان سره دوکه اوکړه. هغهٔ ته ئې په قرآن قسم اوکړو. او ورته ئې اووے چه زما د دے جرګو مرکو غرض قطعی دا دے چه د سيکانو سره د صلحے کوشش اوکړم. او په باعزته طريقه پېښور ترلاسه کړم. د سلطان محمد خان په زړهٔ کښې داويره وه چه که دوست محمد خان پېښور فتح کړی نو هغه به يقيناً ما د پېښور د حکومت نه محروم کړی. په دے وسواس کښې د رنجيت سنګه استاذی جنرل هارلال نور هم زيات راوستو. او ورسره ورسره ئې د رنجيت سنګه د لوری نه د دهٔ سره د معقول رشوت او د پېښور د حکومت لوظ هم اوکړو. او هغه ئې د دے خبرے ته اماده کړو چه هغه د شپے په تيارهٔ کښې د خپل ورور د کيمپ نه د سيکانو کيمپ ته اوتښتی.

د سلطان محمد خان د دې غدارۍ او خود غرضۍ نتیجه دا شوه چې د هغهٔ ټول فوځ تار په تار او په خپله خپله مخه لاړ۔ دوست محمد خان هم په دې غدارۍ داسې دړد منډ شو چې د جنګ نه بغیر کابل ته لاړ۔ (مئ ۱۸۳۵ء)۔

سلطان محمد خان په دې خپلې غدارۍ د خپل ورور مټې هم پریکړې او د کوم مقصد د پاره چې هغهٔ دا غداري کړې وه هغه هم پوره نهٔ شو۔ سیکانو هغه د پېښور د حکومت نه محروم کړو۔ بلکه څه موده ئې په رهتاس کښې حاکم کړو۔ او بیائې په پېښور او کوهاټ کښې څه جاګیر ورکړو۔ د پښتنو د صوبې حکومت د هری سنګه نلوه په لاس کښې وو۔ د دې غدارۍ نه دوه خرابې نتیجې اووتلې۔ یعنې یو خو په پېښور باندې د سیکانو قبضه مستقله شوه۔ او بله دا چې د کابل د لورې نه چې کومې حملې د سیکانو په زړونو کښې ویره پیدا کړې وه هغه د دوئ د زړونو نه تر ډېره حده لرې شوه۔ او د دې نه پس سیکانو په پښتنو باندې داسې ظلمونه راواخستل۔ چې پښتانهٔ ئې تر پوزې راوستل۔ په پښتنو کښې هری سنګه د یو خونړۍ بلا په ډول مشهور شو۔ د پېښور په خوا او شا کلیو کښې هری سنګه د یو داسې ظالم او سفاک حیثیت موندلې وو چې میندو به خپل واړه بچي د ضد او ژړا نه د هری سنګه په نامه منع کول۔

د دوست محمد خان د میرنو ورونو بالخصوص د قندهار او پېښور سردارانو دا خبره نهٔ شوه زغملې چې د دوست محمد خان اقتدار دِ دومره زیات شي چې هغه په دوئ بالادستي حاصله کړي۔ د دې بد نیتۍ نتیجه دا شوه چې پېښور د دوئ د قبضې نه هم اووتلو۔ او د دوست محمد خان لاس ته هم رانغلو۔ د سردار پائنده خان په ځامنو کښې چې سردار سلطان محمد خان د خپلو ذاتي مفادو په بنا د خپل ورور او خپل قام سره کوم سلوک کړې دې د هغې څه لږ شان حال د پورته واقعاتو نه څرګندېږي۔ په دې بنا دا به نامناسب نهٔ وي چې د دې سردار حال لږ په تفصیل بیان شي۔ په انګریزانو کښې اول سړې چې د سردار سلطان محمد خان سره ئې ملاقات کړې او د هغهٔ په مقله ئې خپل خیالات ظاهر کړي دې هغه الیګزینډر برنس دې چې په ۱۸۳۲ء کښې پېښور ته راغلې وو۔ او یو میاشت د سلطان محمد خان میلمه پاتې شوې وو۔ د سردار سلطان محمد خان او د هغهٔ د ورونو په مجلس کښې چې دې بنا غلي لیکوال کوم وخت تېر کړې دې او کوم ښهٔ سلوک چې د دې سردارانو له خوا د هغهٔ سره شوې دې۔ دا لیکوال د هغې منته په ډېر ارت زړهٔ کوي۔

دے ښاغلی لیکوال د پېښور او خوا او شا علاقے د ښائست او قدرتی مناظرو په ستائینه کښے هم د ډیرے فراخدلۍ نه کار اخستے دے۔ او داسے وائی چه زمانهٔ پایېزی چه د پسرلی په موسم کښے به د پېښور نه زیات ښائسته او ښکلے ځائے بل چرته ما لیدلے وی۔ د دے علاقے آب و هوا باعونه، رنګا رنګ ګلونه په زړهٔ او دماغ یو عجیبه کیفیت پیدا کوی۔ او په دے کیفیت کښے د خلقو مهمان نوازی نور هم زیاتے راولی۔

دا ښاغلے لیکوال د سردار سلطان محمد خان په حقله داسے وائی :-

" سردار سلطان محمد خان په عمر کښے قریبًا د پنځه دیرشو کالو دے۔ په قد رنګ لوړ او په رنګ سکاڼ دے۔ ښهٔ تعلیمیافته، خوش اخلاقه او مهذب دے۔ دهغهٔ بے تکلفه او دخوش اخلاقۍ سلوک زما په زړهٔ کښے د هغهٔ یو پائیدار یاد قائم کړو۔ د هغهٔ په عقل، د هغهٔ خوش اخلاقی غالبه ده۔ هغه د خپل وخت یو زړور سپاهی دے۔ په لیکلو لوستلو پوهیږی۔ ولے د فیصلے چل نهٔ ورځی۔ د هغهٔ دربار ته د فریادی په راتلو کښے هیڅ څه قدغن نشته۔ هرڅوک خپل خپل شکایت په ازادۍ بیانولے شی۔ ولے خبره یوه هم نهٔ فیصله کیږی۔ او په دے وجه خلق ناراض وی۔ د هغهٔ سره د درانو ډیر خانان اوسیږی۔ د هغهٔ دسترخوان لوئے او د هرچا د پاره دے۔ دغه وجه ده چه د هغهٔ لاس تنګ وی۔ د دے سردار حکومت د پېښور په میدانی علاقه او د کوهاټ ترغرونو پورے محدود دے۔ خټک د خپلے علاقے مالیه دولس زره روپۍ د کال ورکوی۔ د یوسف زو قبائیل هم څه معمولی مالیه ورکوی۔ په هشتنغر کښے د دهٔ یو ورور سید محمد خان اوسیږی، او په کوهاټ کښے ئے بل ورور پیر محمد خان۔ د کابل او پېښور ورونو ترمینځه دشمنی ده۔ ولے د قندهار ورونه د پېښور په پړه دی۔ او دا نهٔ غواړی چه د هغهٔ طاقت دِ دومره زیات شی چه په پېښور یا قندهار حمله اوکړی۔ ولے اغلبه ده چه د کابل ورور به دا دواړه علاقے په لږه موده کښے په خپله قبضه کښے واخلی۔ که چرے دوست محمد خان په پېښور حمله اوکړه نو سلطان محمد خان به د سیکانو نه مدد او غواړی۔ او سیکان به ضرور هغهٔ ته مدد ورکوی۔ ځکه چه دوست محمد خان هیچرے سیکانو ته په خراج ورکولو نهٔ رضا کیږی۔ د رنجیت دارائے د هغه وخت سره تعلق لری چه سلطان محمد خان د پېښور با اختیاره حاکم وو۔ اګرچه سیکانو ته به ئے خراج ورکولو۔ لیکن د دے نه لږه موده پس سیکانو په پېښور کښے خپل سیک ګورنر مقرر کړو۔

په پیښور باندې د سیکانو قبضه د دوست محمد خان په زړه کښې لکه د ازغي چوکه کیدله. او هغهٔ د پیښور د راستونولو ته ډیر لیواله وو. بل طرف ته هري سنګه نلوه هم په په پښتنو باندې ډیرګیره شوې وو. هغهٔ په جمرود کښې د یوې قلا د تعمیرارادہ اوکړه. او داځ نیت وو چه په کابل حمله اوکړي. امیردوست محمدخان چه د هغهٔ د ارادو نه خبر شو نو د خپل ځوئ محمد اکبرخان په کمان کښې ئې په پیښور باندې د حملے په غرض خپل فوځونه رااولیږل. دې فوځونو په یکم مئ سنه ۱۸۳۷ء د جمرود په مقام په سیکانو حمله اوکړه. هري سنګه هم په ډیرې تادئ د خپلو فوځونو امداد ته اورسیدلو. پښتانهٔ د جمرود د قلا په اخستلو کښې څو کامیاب نهٔ شول. ولے د هري سنګه په کمان کښې چه کوم فوځونه د جمرود د کومک په غرض تلی وو. هغه ئې اوتښتول. په دې جنګ کښې هري سنګه په هغه مقام چه نن ورځ اسلامیه کالج سره نزدو د «برج هري سنګه» په نامه مشهور دے سخت ژوبل شو. او د دې زخمونو نه مړشو. اکبرخان په سیکانو پسے حمله اوکړه. او دوه توپې ئې هم ورنه اونیولے. لیکن سیکانو هم په ډیر شدت سره د هغهٔ مقابله اوکړه. دغه وجه ده چه هغه نهٔ د پیښور او نهٔ د جمرود په تسخیرکښې کامیاب شو. او بیرته جلال آباد ته لاړ.

د هري سنګه په مرګ رنجیت سنګه ته لویه صدمه اورسیدله. وئیلے شي چه د دې جرنیل په مرګ هغهٔ په چغوچغو اوژړل. چونکه د پښتنو حملے هغه ډیر ویرولے وو نو هغهٔ سمه سئ خپل بهترین ډوګره فوځ د دهیان سنګه په ماتحتئ کښې د پیښور په لور رااولیږلو. دا، دهیان سنګه» د هغه ګلاب سنګه مشرورور وو چه وروستو په هغهٔ انګریزانو دکشمیر صوبه خرڅه کړه. او دغه شان دکشمیر د ریاست مالک شو. دهیان سنګه د رارسیدو سره سمه سئ د جمرود د قلا مرمت شروع کړو. او په دې کارکښې ئې دومره جلدي اوکړه چه په خپله ئې هم د سپاهیانو او مزدورانو سره کارکولو. ولے دهیان سنګه ډیر موده د پښتنو په علاقه پاتے نهٔ شو. او رنجیت سنګه ته د سرکښو پښتنو د پاره د یو داسے سړي ضرورت پیښ شو چه هغه په ظلم او سفاکئ کښې د هري سنګه نلوه نه هم دوه ګوتے د پاسه وو. دا سړے یو اطالوي په نامه اویټیباټیل (ابوطبیله) او د رنجیت سنګه یو جرنیل وو. او د خپل ظلم اوسفاکئ د پاره د پښتنو په تاریخ کښې تراوسه مشهور دے. دا جرنیل به د پیښور په ګورکهټړئ

کښې اوسیدهٔ - او یو داسې ظالم انسان وو چه د دهٔ د ظلم داستانونه تراوسه په مجروکښې بیا ییږی - وائی چه دهٔ به په نهٔ څه خبره مجرمان د مهابت خان جمات د ډنګو منارو نه ښکته ارتاوُل - او په خپله فیصله کښې د هیڅ یو دلیل اواپیل قائل نهٔ وو -

د جمرود د جنګ نه پس داسې اسباب پیدا شول چه د هغې نتیجه د افغانستان په وړومبنی جنګ کښې رااووتله - د سدوزو سرمائی دارالخلافه (پېښور) د سیکانو په قبضه کښې د ورتلو په وجه د دوست محمد خان په زړهٔ کښې داسې زخم جوړ شوے وو چه هغهٔ به هر وخت تازه وو - په دغه ورځو کښې ایرانیان هم په هرات باندې د حملې په تابیا کښې لګیا وو - او چه خپلې تیاریانې ئې مکملې کړې نو په کال سنه ۱۸۳۷ کښې ئې په هرات حمله اوکړه - او ښارئې محاصره کړو - په دې ورځو کښې لارډ آک لینډ د هندوستان ګورنر جنرل تازه تازه هند ته راغلې وو - د امیر دوست محمد خان دا خیال وو چه د انګریزانو په دوستۍ او امداد به پېښور د سیکانو نه تر لاسه کړم - په دې غرض هغهٔ دے نوی ګورنر جنرل ته یو خط اولیکلو - او په هغې کښې ئې د خپلې دوستۍ او وفادارۍ د اظهار نه پس دا خواست کړے وو چه انګریزان دِ پېښور د سیکانو نه زما د پاره واخلی -

د لارډ آک لینډ په دماغ او ذهن په هندوستان باندې د پښتنو د حملې خپسه ناسته وه - هغهٔ د دوست محمد خان د اقتدار سخت مخالف وو - او څکه ئې د دوست محمد خان د پاره د سیکانو سره د دشمنۍ نهٔ خوښوله - د دوست محمد خان د خط په جواب کښې هغهٔ دا اولیکل چه ، زمونږ بنیادی پالیسی دا ده چه د ملک صنعت او تجارت ته دِ ترقی ورکړے شی - د نورو ملکونو په داخلی معاملاتو کښې ګوتې وهل زمونږ د پالیسۍ نه بهر خبره دی - څکه مونږ د سیکانو سره د پېښور د واپس کولو په حقله څه خبره نهٔ شو کولے - البته زهٔ به ډیر زر یو افسر د تجارتی معاملاتو د خبرو اترو په حقله کابل ته دراولیږم - او په دې خبرو کښې به د طرفینو فائده وی -

د انګریزانو سره د دوست محمد خان دا خط و کتابت د هغهٔ د قندهارورونو د خپل اقتدار د پاره یوه خطره اوګڼله - نو هغوی د خپلې مرستې د پاره ایران خوښې کړو - ایران ته ئې یوه جرګه اولیږله - او د ایران د روسی سفیر په معرفت ئې د شهنشاه روس نه د خپلې مرستې خواست اوکړو - د ایران او روس دواړو دربارونو د لوړی نه

هغوی ته حوصله افزا جوابونه ورکړے شول- او د سلطنت روس د طرف نه یو سفیر کپتان ویکویچ د خبرو اترو په غرض قندهار ته راغے - بل لور ته لږے ورځے پس د انګریزانو یوه جرګه چه په ایګزینډر برنس، کپتان لچ، لیفټیننټ وډ او ډاکټر لارډ مشتمله وه د لارډ آک لینډ د طرف نه دخیبر په لار افغانستان ته اورسیده. ددے جرګے استقبال ته دوست محمد خان خپل ځوئے محمد اکبر خان جلال آباد ته رالیږلے وو- امیر دوست محمد خان هم ددے جرګے هرکلے په ډیر ښهٔ شان اوکړو-

څو ورځے پس ددے جرګے او امیر دوست محمد خان ترمینځه خبرے اترے شروع شوے. د دوست محمد خان په خیال کښے ددے خبرو اترو اصلی مدعا دا وه چه انګریزان ډِ د سیکانو نه د پیښور علاقه هغهٔ ته واخلی- ولے انګریزان دے مطالبے منلو ته تیار نهٔ وو- هغوی زیات نه زیات دومره کول چه سیکان د سلطان محمد خان په حق کښے دے خبرے ته اماده کړی چه د پیښور علاقه د خراج په عوض هغهٔ ته ورکړی- د دوست محمد خان په مقابله کښے انګریزانو هم سلطان محمد خان د خپل غرض سړے ګڼلو- او دائے خیال ووچه د ضرورت په وخت کښے به دخپلے مرضئ هرکار ترینه اخستلے شی- ولے د دوست محمد خان نه د هغوی دا توقع نهٔ کیدله- بل طرف ته دوست محمد خان هم دے خبرے ته تیار نهٔ وو- چه سلطان محمد خان ډِ د سکهانو د خراج ګذار په ډول د پیښور حاکم شی - ځکه چه د سکهانو په نسبت دوست محمد خان د پاره خپل ورور زیات باعث تکلیف ثابتیدلے شو- او دوست محمد خان په دے خپله نظریه کښے ګرم هم نهٔ وو- ولے چه که سلطان محمد خان دوباره د سیکانو د لوری نه د پیښور خراج ګذار حاکم مقرر شوے وے نو هغهٔ به یقیناً د سیکانو په مرسته او لمسون په کابل حمله کوله- او یا به ئے هر وخت د هغه د بدی ویره ورکوله- او دغه شان به ئے د دوست محمد خان عمر په دار کړے وو-

دوست محمد خان د خپل طرف نه د انګریزانو د دوستئ حاصلولو وس اوکړو- ولے انګریزان د هغهٔ دے مطالبے منلو ته تیار نهٔ شو- او څه داسے جواب ئے ورنهٔ کړو چه د هغهٔ زړهٔ پرے راټول شوے وے- بل لوری ته روسی سفیر چه قندهار ته راغے نو هغهٔ ته دا معلومه شوه چه په پښتنو سردارانو کښے دا همیت خاوند د کابل سردار دے- نو هغهٔ د شهنشاه روس نه د کابل د سفارت فرمان راوغوښت او کابل ته راغے - ولے تر هغه وخته چه دوست محمد خان د انګریزانو له خوا په قطعی ډول نا امیده شوے نهٔ وو- نو هغهٔ د روسی سفیر سره څه خاص امتیازی سلوک

نهٔ وو کړے - ولې کوم وخت چه امیر دوست محمد خان ته دا معلومه شوه چه انګریزان تش د خپل مطلب خبرے کوی نو د دے نه پس هغهٔ خپله رویه د روسی سفیر سره بدله کړه - او د هغهٔ سره ئے جرګے شروع کړے - او دا جرګے زر کامیابے شوے - روسی سفیر د خپل حکومت د لوری نه د امیر صاحب سره د روپو د امداد وعده اوکړه - او د هغهٔ نورو مطالبو په مقله ئے هم د خپل حکومت د لوریٔ سپینه او تړوله - او د رنجیت سنګه سره ئے د پیښور د ستنولو په باب کښے هم دخبرو اترو لوظ اوکړو - او د دے نه پس د روسی سفیر په ذریعه د بارک زو ورونو او حکومت ایران ترمینځه هم د ملګرتیا لوظ اوشو - ایران د ضرورت په وخت کښے امیر دوست محمد خان ته د امداد ورکولو وعده اوکړه -

د ،،برنس ،، په ناکامیابیٔ او د روسی سفیر ،، ویکویچ ،، په مراد مندیٔ چه د امیر دوست محمد خان او انګریزانو تعلقات خراب شول نو انګریزانو د سیکانو سره معاهده اوکړه - او د پښتنو د ملک په یولویه حصه ئے د سیکانو قبضه اومنله - د انګریزانو دا مدعا وه چه که امیر دوست محمد خان په خپله مرسته کښے ایران او روس اودروی نو دویٔ به د هغهٔ مقابلے ته سیکان اوپاروی - د دغه وجه وه چه دویٔ به سیکان د پښتنو په علاقو بانددے د بلوسو د پاره لمسول -

په افغانستان کښے د ایران او روس د متوقع اثرونفوذ د زیاتیدو امکان د انګریزانو په زړه کښے یو لوئے خطر پیدا کړے وو - او د هغوی سره په هندوستان بانددے د روس د حملے خطره دومره زیاته شوه - چه د انګلستان وزارت په وارخطاییٔ کښے دا فیصله اوکړه چه د هندوستان په شمال مغربی سرحد بانددے یو داسے سړے حکمران پکار دے - چه هغه د انګریزانو د مرضیٔ تابع وی - او داسے حکمران د لرے کړے شی - کوم چه د انګریزانو د مخالفینو په اشاره چلیږی - د انګلستان د وزارت دا فعل یو داسے ناجائز فعل وو چه د دے جواز په هیڅ رنګ نهٔ شی پیدا کیدے - اول خو په هند بانددے په دے ورځو کښے د روس د حملے خطره بے بنیاده وه - د انګریزی مقبوضه هند او سلطنت روس ترمینځه د ،،خیوا ،، ،، بخارا ،، ،،خوقند ،، اوزبک ریاستونه او په افغانستان کښے د محمد زو ورونو ریاستونه حائل وو - او د محمد زو او انګریزی مقبوضه هند ترمینځه هم د سیکانو او امیران سنده ریاستونه واقع وو - او سیکان د وادیٔ پیښور د قبضے په وجه د محمد زو ورونو خونړی دشمنان وو - په داسے حالاتو کښے په دے زمانه کښے د روس د حملے خطره صرف یو وهم وو - ولې په دے وهم کښے د ایران د لوری نه په

هرات باندے حملے او د دے سنار محاصرے نور هم زیاتے پیدا کړو۔ دا محاصره په ۲۳،
نومبر ۱۸۳۷ء کښې شروع شوی وه۔ او قریبًا نهه میاشتې جاری وه۔
د ډیرے مودے نه ایرانیان د هرات صوبے ته بسخیدل۔ او د هغوی داخواهش
وو چه دا صوبه په خپل سلطنت کښې شامله کړی ۔ د دے حملے نه وړاندے هم څو
ځله ایرانیانو په هرات حملے کړے وے۔ ولے کامیابي ئے نهٔ وه موندلی ۔ په دغه ورځو
کښې اگر چه د انگریزانو او روسیانو ترمینځه هم څه مخالفت نهٔ وو۔ او د دواړو حکومتونو
په ایران کښې اثر و نفوذ زیات وو۔ ولے د دے باوجود د دے دواړو لویو حکومتونو د
خپلو خپلو اغراضو پوره کولو په لړ کښې د ایران نه د شطرنج د یو مهرے کار اخستلو۔
چنانچه هرات د دے حملے ته د روس په اشاره پاریدلے وو۔
ایرانی فوځ د ځلوبښت زره په شمار کښې د هرات د حملے په نیت راروان شو۔ د
هرات په حکومت کښې د دے حملے د مقابلے توان نه وو۔ نو هغوی په ښار کښې
محصور شول په دغه ورځو کښې د هرات صوبه د شاه محمود د ځوی کامران په قبضه
کښې وه ۔ او یار محمد خان د هغهٔ وزیر وو ۔ په دے وزیر کښې ډیر عیبونه وو۔ لیکن د خپلے
ازادیٔ په دے جنگ کښې چه دهٔ د کوم صبر، استقلال او شجاعت نه کار اخستے وو۔
هغه د ډیرے ستائینے ور دے ۔ د دهٔ د آهنی عزم و استقامت په برکت د ښار د ننه د
محصور اولس حوصلے دومره بلنده وے چه هغوی په هیڅ قیمت د ایران غلامیٔ ته سر
ښکته کولو ته نهٔ تیاریدل ۔ د ایران فوځ په شمیر کښې ځلوبښت زره او د هر قسم سازو
سامان نه اراسته وو۔ په دے کښې د روس ، فرانس او اټلی افسران هم وو۔ د دے
دومره لوئ فوځیٔ طاقت په وجه د « فیریر » د وینا مطابق د هرات د تسخیر د پاره د دے
هفتے کافی وے۔ ولے ایرانی فوځ نهه میاشتے د هرات نه چاپیره پروت وو۔ او هرات
ئے فتح نهٔ کړو۔ د دے یوْ وجه خو دا وه چه د ایرانی فوځ ځنے افسرانو د انگریزانو نه
رشوت خوړلے وو۔ ولے غټه وجه ئے د پښتنو خپل شجاعت او استقلال مظاهره کړی
وه۔ د ایشیا د جنگونو په تاریخ کښې به د هغے مثال کمتر او موندلے شی۔ د « فیریر » د
وینا مطابق د پښتنو یو معمولی فوځیٔ دسته به د ایران د یو لوئ فوځ سره ترهغه
وخته جنګیدله چه ترڅو به ئے ایرانی فوځ نهٔ وو تالا کړے ۔ د هرات د محاصرے په
وخت کښې یو انگریز افسر هم په هرات موجود وو۔ د دهٔ نامه کپتان « پاټنجر » وه۔ په
دے محاصره کښې به دے افسر هم د پښتنو قابل قدر امداد کولو۔ دے سری اگر چه په

ظاهره کښې د يو سياح حيثيت لرلو۔ ولې په حقيقت کښې دے حکومت هند د يو هندو طبيب په جامه کښې د محاصرے نه اګاهو هرات ته لیږلے وو۔ او د هغهٔ هندوانو سوداګرو په واسطه به دهٔ ته د حکومت هند نه مالی امداد رسيدلو۔ کوم چه د انګريزانو ملګری وو۔ هم ددے افسر په ذريعه حکومت هند شاه کامران ته د هرات په محاصره کښې د مالی امداد پيشکش کړے وو۔ د غه وجه ده چه دا انګريز افسر د محاصرے په ټوله عرصه کښې په هرات کښې موجود او د محصورينو سره ئے اوږه په اوږه کار کولو۔ د هرات په دے محاصره کښې که يو طرف ته د جنګ په ميدان کښې ايرانيانو او پښتنو خپلے وينے تويولے نو په بل لور د انګريزانو او روسيانو ترمينځه سياسی جنګ شروع شو۔ انګريزانو ته دا خبره ښه معلومه وه چه د ايران په پارولو او د هرات حملے ته په لمسولو کښې د حکومت روس لاس دے۔ او درپرده دا جنګ د روس په هدايت او کومک کيږی۔ ليکن انګريزان په ښکاره د روس عملی مخالفت ته تيار نهٔ وو۔ او په دے کوشش کښې لګيا وو۔ چه په سفارتی ذريعو په ايران دومره زور واچوی چه ايران دا محاصره اوچته کړی۔ ولے د انګريزانو دا کوششونه به د روسی سفارت له خوا بے نتيجے ثابت شول۔ او اخر انګريزانو د ايرانی حکومت برخلاف د جنګ کولو اراده اوکړه۔ ايرانی حکومت چه د دوئ په نيت پوه شو۔ نو خپل ټول فوځی طاقت ئے جمع کړو۔ او په هرات باندے ئے د يو فيصله کن حملے اراده اوکړه۔ او په ۲۳ جولائی ۱۸۳۸ کښې ئے يو خوفناکه حمله اوکړه۔ پښتنو هم ددے حملے د مدافعت د پاره په خپلو کښې جرګه اوکړه۔ او په دے جرګه کښې دوئ د ژوند د اخری سلګئ پورے د جنګيدلو اقرار اوکړو۔ د ايران دا حمله که هرڅومره زور داره وه ولے په کوم استقلال، بهادرئ او ارته سينه چه پښتنو دا حمله اوزغمله۔ د هغے مثال به ډير کم اوموندلے شی۔ دا حمله د ايران اخری غشے وو چه خطا لاړ۔ ددے نه پس ايران د محاصرے په اوچتولو مجبور شو۔ او ددے وجه دا وه۔ چه انګريزان چه به سفارتی ذرائعو په ايران کامياب نهٔ شول۔ نو دوئ په سمندری لاره په ايران حمله اوکړه۔ او په دے ډول ئے ايران د هرات د محاصرے په اوچتولو مجبور کړو۔ دا محاصره په اتم ستمبر ۱۸۳۸ کښې ختمه شوه۔

# د افغانستان اول جنګ

د هرات د محاصرې د ختمیدو نه پس انګریزانو د پاره د افغانستان په معاملاتو کښې دخل اندازي کول څه مناسب نه وو ولې انګریزان چونکه په دغه زمانه کښې په هند کښې د اقتدار اعلیٰ خاوندان وو. او د امیر دوست محمد خان له خوا د روسي سفیر سره ترجیحي سلوک دوئ د خپل عزت او اقتدار منافي ګڼلې وو. نو دغه نه ئې د بدل اخستو اراده اوکړه. بل طرف ته سلطنت روس د ایران نه د معاهده ترکمن چائې (۱۸۲۸ء) له مخه یوه لویه حصه شوکولې او د خپل سلطنت سره ئې ګنډلې وه. او په وسطي ایشیا کښې د خپل سلطنت خورولو خواهش مند وو. د سلطنت روس دا ارادې انګریزانو ته د خپلو مفادو په لړ کښې خوفناکې ښکاریدې. نو انګریزانو دا فیصله اوکړه. چه د افغانستان په تخت دې یو داسې سړې کښینولې شي. چه د هغه تعلقات د انګریزانو او سیکانو دواړو سره ښه وي. امیر دوست محمد خان چونکه د پېښور د دوباره قبضې حاصلولو نه بغیر د انګریزانو سره دوستۍ ته تیار نه وو. او انګریزانو دا امیر د پاره سیکان د خپل ځان نه ناراض کړل. نو د دې مشکل حل د هغه وخت ګورنر جنرل لارډ آک لینډ دا غوره کړو. چه د بارک زی سردار دوست محمد خان په ځائې دې سدوزې شاه شجاع دوباره د افغانستان بادشاه شي. ځکه چه شاه شجاع د دې نه څو کاله وړاندې (۱۸۳۳ء) په خپله مرضۍ د رنجیت سنګه سره په یو معاهده کښې د اباسیند نه په قبله د ممبرود پورې علاقې نه د دست برداري اقرار کړې وو. او دده په مقله د دوئ دا اطمینان وو. چه د بادشاه کیدو نه پس به هم شاه شجاع د وادئ پېښور په مقله خپله دعوې دوباره تازه نه کړي. او په دې ډول به د هندوستان په قبلیځه پوله به د سیکانو او پښتنو داسې ریاستونه قائم وي چه په خپلو کښې به ئې هم روغه وي او د انګریزانو اقتدار به پرې هم قائم وي.

په دے غرض دا ځل د شاه شجاع سره بیا معاهده اوشوه۔ دا ځل په دے معاهده کښے دشاه شجاع او رنجیت سنګه نه علاوه انګریزان هم شامل وو۔ ددے معاهدے اتلس شرطونه وو۔ چه څوارلس شرطونه ئے هم هغه وو کوم چه دشاه شجاع او رنجیت سنګه تر مینځه په کال ۱۸۳۳ء کښے فیصله شوی وو۔ ددے معاهدے وروستے شرط هم هغه دے کوم چه وړاندے بیان شوے دے۔ او په دے کښے شاه شجاع دجمرود نه په ښکته د خپلو ټولو علاقو نه د دست برداری اقرار کړے دے۔ ددے معاهدے د یو بل شرط مطابق به چه چرته دشاه او مهاراجه فوځونه یوځائے استوګن وو۔ هلته به غوا نه شوه حلالولے۔ په یو بل شرط کښے مهاراجه ددے خبرے اقرار کړے وو چه هغه به پنځه زره مسلمانان سپاهیان د شاه شجاع د امداد په غرض په پیښور کښے هغه وخت تیار ساتی کله چه انګریزی او سیک حکومتونه ددے موجودګی ضروری اوګنی۔ په معاهده د رنجیت سنګه، شاه شجاع او لارډ آک لینډ دستخطونه ثبت دی۔

ددے معاهدے نه پس یوویشت نیم زره فوځ د شاه شجاع د امداد د پاره تیار شو۔ اګرچه په افغانستان باندے دا لام د رنجیت سنګه په صلاح مشوره ترلے شوے وو۔ او دهغه د علاقے د حفاظت ذمه واری انګریزی حکومت په خپل سر اخستی وه۔ ددے باوجود رنجیت سنګه د انګریزانو په دیانتداری تر دے حده بے اعتماده وو چه هغه انګریزی فوځونو ته په خپله علاقه کښے د تیریدو اجازت ور نه کړو۔ او ددے نتیجه دا شوه چه انګریزی فوځونه دشاه شجاع په ماتحتی کښے د سنده او بلوڅستان په لار قندهار ته روان شول۔ او د شجاع د فوځونو هغه برخه چه د رنجیت سنګه په خپلو فوځونو مشتمله وه۔ د شجاع د ځوی شهزاده تیمور په سرپرستی کښے د پیښور په لار کابل ته روانه شوه۔ ددے فوځ سره یو انګریز افسر "کرنل ویډ" د شهزاده د سرپرست او د انګریزی حکومت د نمائنده په ډول مقرر وو۔

شاه شجاع د انګریزی فوځ سره د بلوچستان په لار قندهار ته لاړ۔ او په ۵ اپریل ۱۸۳۹ء د قندهار په ښار ورننوت۔ د قندهار سردارانو د هغه مقابله او نه کړه۔ او ایران ته په تیښته لاړل۔ د ښار خلقو د ناچاری نه د شجاع حکومت ته غاړه کیښوده۔ په قندهار کښے د شاه شجاع د بادشاه کید و اعلان اوشو۔ ولے خلقو ته دا معلومه وه چه شاه شجاع د یو پردی حکومت په توره ځان بادشاه کړے دے۔ د دغه وجه وه چه د خلقو په زړونو کښے د هغه قدر و قیمت ډیر کم وو۔ د انګریزانو فوځ د ۲۱ رجون

سنه ۱۸۳۹ پورے په قندهار کښے ایسار وو. د غه وخت د فوځ یاد حصه هم د دوی سره یو ځائے شوه. د پنجاب مهاراجه رنجیت سنګه هم په دغه ورځ وفات شوے وو.

د قندهار نه پس انګریزی فوځ او شاه شجاع د غزنی د تسخیر په نیت روان شول. په غزنی کښے د امیر دوست محمد خان یو ځوئے غلام حیدر خان حاکم وو. او د ښار د حفاظت د پاره ورسره درے نیم زره فوځ وو. د غزنی قلعه بندی ډیره محکمه وه. ولے انګریزانو دا مضبوط او قلا بند ښار هم په خپل جنګی طاقت نه بلکه د رشوت په طاقت فتح کړو. غلام حیدر خان د انګریزانو په لاس کښے بندیوان شو. د غزنی په دا سے سمدستی سقوط دامیر دوست محمد خان په ملګرو کښے پریشانی او وارخطائی پیدا شوه. په دوی کښے ډیر په پټه د شجاع او انګریزانو طرفداری شوی وو. د بارک زو ډیر امیران د انګریزانو په رشوت د دوست محمد خان د مرستے نه په شا شوی وو. او دوست محمد خان هم په دے خبرو ښه پوه شوے وو. هغه ته چه خپله معامله ښه ښکاره شوه. نو د خپلو امیرانو په صلاح هغه د شاه شجاع د پاره د افغانستان تخت په دے شرط پرے ښودلو ته تیار شو چه د وزارت عهده د دوست محمد خان ته ورکړے شی. او په دے کښے هغه څه زیاته نه وو کړے.

څکه چه د وزارت عهده د احمد شاه د زمانے راسے د بارک زو حق ګڼلے شو. په دے غرض هغه خپل ورور جبار خان چه شاه شجاع سره ئے ښه تعلقات وو. د انګریزانو کیمپ ته اولیږلو. دا یو معقوله مطالبه وه. ولے د بد قسمتئ نه د دوست محمد خان مطالبه او نه منلے شوه. بلکه په هغه پورے توقے او پیچوړے اوشوے. جبار خان ته اوویلے شول چه په لدهیانه کښے د شاه شجاع ځائے خالی دے هلته به دوست محمد خان اولیږلے شی. جبار خان په دے خبرو اترو ډیر مایوس شو. او په خپلو راتلو پښیمانه شو. او د غه شان مایوس کابل ته راغے.

امیر دوست محمد خان د خپلو ملګرو په وفادارئ شکمن شوے او د هغوی په رویه پوه شوے وو. نو کوم وخت چه انګریزی فوځونه د غزنی د تسخیر نه پس د کابل په لور راروان شول نو دوست محمد خان خپلو ملګرو ته په ډیر اخلاص او منت د انګریزانو سره د مقابلے خواست اوکړو. او هغوی ته ئے د مذهب، پښتونولئ او قام ولئ ډیر ننګونه وراندے کړل. ولے د هغه ملګری او نه خوزیدل. په دا سے حالاتو کښے دوست محمد خان هم دا غوره اوګڼله چه دا بے ننګه ملګری چه ئے د جنګ په میدان کښے یوائځ

پرېږدی او رانه تښتی- نو د دے نه به ښه داوی چه هڅو د دوئ د ملګرتیا نه زړهٔ لوئے کړم - اود دوئ په مرسته هڅو جنګ او نهٔ کړم - د دے فیصلے مطابق هغهٔ دکابل نه دتلو فیصله اوکړه- او انګریزی فوځ چه په ۶, اګست سنه ۱۸۳۹ء په کابل راننوتو-نو دوست محمد خان دکابل نه تلے وو- د انګریزی فوځونو مقابله او نهٔ شوه- د شاه شجاع د زړهٔ پخوانے ارمان یو ځل بیا پوره شو- هغه د افغانستان بادشاه شو- او په بالاحصار کښے ئے استوګنه اختیار کړه-

امیر دوست محمد خان د کابل نه د بامیان په لور لاړ- انګریزانو چه په کابل قبضه اوکړه نو د هغهٔ د ګرفتارئ په غرض ئے د کپتان او ټرم په ماتحتئ کښے یوه فوځی دسته او لیږله- ولے حاجی خان کاکړ چه د لارو ګودرو نه واقف وو انګریزی فوځ هله بامیان ته اورسولو چه امیر د بامیان نه هم ډیرش میله وړاندے تلے وو- په دے وجه انګریزی فوځ د هغهٔ په نیولو کښے کامیاب نهٔ شو- امیر دوست محمد خان د بامیان نه بخارا ته لاړ- د بخارا امیر په ظاهر کښے خو د هغهٔ ښهٔ قدر و عزت اوکړو- ولے په اصل کښے ئے قید کړے وو- په دے قید کښے د هغهٔ سره ځل دوه ځامن محمد اکبر خان او محمد افضل خان هم وو-

د شاه شجاع په مرسته چه د سیکانو کوم فوځ د کرنل ویډ او شهزاده تیمور په ماتحتئ کښے د پېښور په لور روان شوے وو- د رنجیت سنګه د مرګ په وجه د پېښور نه د هغے په روانیدو کښے ډیره اټالی راغله - دا فوځ په ۲۲, جولائی سنه ۱۸۳۹ء د جمرود نه روان شو- او په خیبر ورننوتو- د خیبر قبائیلو د دے فوځ څه قابل ذکر مخالفت ځکه او نهٔ کړو چه په دے خلقو کښے شاه شجاع د اعتبار خاوند وو- او دا فوځ د شجاع د ځوی شهزاده تیمور په کمان کښے وو- هغهٔ په دے موقع د دے قبائیلو سره دا لوظ اوکړو چه کوم وخت شاه شجاع د تخت کابل په حاصلولو کښے کامیاب شی نو د قبائیلو د دے مرستے او د دوئ د ټولو پخوانو حقونو خیال به پهٔ ښهٔ شان اوساتلے شی- د دے یقین دهانئ په وجه دا فوځ د څهٔ خاص نقصان نه بغیر په خیبر تیر شو- د دوئ مقابلے ته د امیر دوست محمد خان ځوئے محمد اکبر خان د ډکے په مقام تیار ولاړ وو- ولے هغهٔ د دوئ څه مقابله او نهٔ کړه- او د دے وجه شاید چه دا وی چه د غه وخت به هغهٔ د قندهار او غزنی او شاید چه د کابل د سقوط نه هم خبر شوے وی- او ځکه به ئے د دوئ مقابله بے فائدے ګڼلی وی- به هر حال دا فوځ د ستمبر په اخر کښے د شاه شجاع

تخت نشین کیدو نه درے هفتے پس کابل ته اورسید۔ دغه وخت کښې د انګریزانو د دے لام مقصد پوره شوے وو۔ ځکه چه دوئ د افغانستان د تخت نه هغه سړے په شړلو مجبور کړے وو کوم چه د دوئ خوښ نهٔ وو۔ او خپله فائده ئے په کښې نهٔ لیدله۔ او یو داسے سړے ئے تخت نشین کړے وو چه د دوئ د مطلب سړے وو۔ ولے د دے پروګرام دوئمه حصه لا پوره شوی نهٔ وه۔

د هندوستان ګورنر جنرل لارډ آک لینډ په یکم اکتوبر ۱۸۳۸ء د افغانستان د جنګ اول په موقع دا وعده کړی وه چه کوم وخت شاه شجاع په افغانستان کښې د خپل اختیار مالک شی او د افغانستان سلامتیا او خود مختاری قائمه شی نو انګریزی فوځونه به د افغانستان نه بیرته راو بللے شی۔ د شاه شجاع په تخت نشین کیدو او د امیر دوست محمد خان سره د دوو ځامنو بخارا ته تښتیدلو انګریزانو ته دا موقع په لاس ورکړی وه چه دوئ شاه شجاع ته اختیارات سپارلے وے۔ او د حکومت ذمه واری ئے هغهٔ ته وړ په غاړه کړے وے۔ او په خپله د افغانستان نه په حیا پرده کښې وتلے وے۔ ولے انګریزانو داسے او نهٔ کړل۔

شاه شجاع اګرچه د افغانستان بادشاهئ ته ډیر لیواله وو۔ ولے اوس هغه په دے خبره ښهٔ پوهه شوے وو چه په دے بادشاهئ کښې د هغهٔ د عمر بدنامی ده۔ انګریزانو هغه په داسے حیثیت کښې ساتلو چه د «ډانګ او پړانګ» مثال پرے رښتونے کیدے شو۔ په افغانستان کښې «شاه شجاع شهرت ته څه خاصه صدمه نهٔ وه رسیدلی۔ او دا توقع کیدے شوه چه هغه به د زړو تعلقاتو په زور د افغانستان تخت په خپله قبضه کښې اوساتلے شی۔ او د وطن خلق به هغه برداشت کړی۔ ولے د انګریزانو سفیر «میکناټن» او د هغهٔ پولیټیکل افسر «مسټر برنس» شاه شجاع هم تباه کړو۔ او د خپلے غلطے پالیسئ په نتیجه کښې ئے انګریزی اقتدار ته هم لویه صدمه اورسوله۔ د کرنل «میلسن» په الفاظو کښې «په دے لائق سفیر (میکناټن) کښې هغه دروند خوی نهٔ وو چه د هغې په وجه د دهٔ په شان افسران په جګړو او فسادونو باندے برے موهی۔ دے سفیر په اصل کښې ټول اختیارات په خپل لاس کښې ساتلی وو۔ او د شاه شجاع نه ئے د خټو یو بُوت جوړ کړے وو۔ د ۱۸۳۹ء حکمت عملی یو داسے پالیسی وه چه د هغې په وجه په هرځا او هرڅه کښې دخل ورکړے شو۔ او د دے له کبله د هر قسم مقامی حکومت او مقامی دستور لرے کړے شو»۔

لکه چه مو وړاندے وئیلی دی د شاه محمود او شاه شجاع په جنګونو کښے د خیبر افریدی قبائیل څوځله د شجاع په مرسته جنګیدلی وو - او څو ځله شجاع د خپلے تنګسیا او بے کسئ په ورځو کښے د دوئ سره پناه اخستی وه - اوس چه شاه شجاع د انګریزانو په مرسته دوباره د کابل بادشاه شو نو قبائیلو هغه زاړه خدمتونه دهٔ ته یاد وو - او د خپل ځوی شهزاده تیمور په ځله ئے هغوی ته پیغام لیږلے وو چه ستاسو ټول پخوانی حقوق به په ځائے شی - ولے دا شرط ئے پرے کینبود چه دره به د انګریزی فوځ د تګ راتګ د پاره ازاده وی - خو انګریزی سفیر مسټر میکناټن د دے شرط سره نور داسے شرطونه اوتړل چه هغه نهٔ خو د مغلو په زمانه کښے شوی وو او نهٔ د نادرشاه او احمد شاه ابدالی هغ ته پام شوے وو - د سفیر د دے غیر مدبرانه رویے نتیجه دا شوه چه قبائیلو د واجب اخستلو نه هم بیخی انکار اوکړو - دا شرطونه هغوی په خپلے خود مختارئ او ازادئ کښے مداخلت اوګڼل - او د هغوی د غیرت وینه ئے اوخوټوله - او دوئ ته د بدل اخستلو موقع هم زر تر زره په لاس ورغله - یعنی د خپل واجب د رقم نه ئے ډیر زیات رقم د هغه فوځ په لوټلو پوره کړو کوم چه د "سرجان کین" په ماتحتئ کښے بیرته هندوستان ته روان شوے وو - دا فوځ په دے خیال بیرته لیږلے شوے وو چه په افغانستان کښے امن وامان دے او د شاه شجاع حکومت په مضبوطو بنیادونو قائم شوے دے - لیکن دا خیال واقعاتو ډیر زر غلط ثابت کړو -

شاه شجاع په نوم خو د کابل بادشاه وو - ولے اصل اختیارات د سفیر په لاس کښے وو - دے سفیر د انګریزی فوځ په طاقت دا نیت کړے وو چه د تورے په زور په افغانستان حکومت اوکړی - او ټول رعیت په جبر تابع کړی - په ظاهره کښے خو په ملک کښے امن و امان وو - او د انګریزانو اقتدار په ملک قائم وو - چپه چپیائ وه - ولے دا خاموشی په اصل کښے د یو زبردست طوفان پیش خیمه وه - دا طوفان په نومبر ۱۸۴۱ء کښے راغلو -

د خیبریانو د بغاوت نه علاوه د میکناټن د پالیسئ په نتیجه کښے په کونړ او باجوړ کښے هم بغاوتونه اوشول - او انګریزی فوځونو په دے علاقو کښے هیڅ توره اونهٔ کړه - ولے د میکناټن په سر دغه وخت یواځے دا مصیبت نهٔ وو بلکه د خیبریانو په شان غلجیانو هم بغاوت اوکړو - او هغوی د میکناټن له خوا عائد شوی شرائط په خپلے ازادئ کښے مداخلت اوګڼلو - دا بغاوت په صلح ختم شو - او د غلجیانو د پاره دیرش زره روپئ واجب مقرر شو - د دے نه علاوه انګریزانو په ټول ملک کښے په اهمو مقاماتو خپل فوځونه مقرر کړی وو -

په دے وجه د ملک د ټولو سردارانو په زړونو کښې دا خطره پيدا شوی وه چه انګريزان د شجاع په نوم په افغانستان خپله قبضه قائم ساتل غواړی ـ د امير بخارا په زړه کښې هم دا وهم پيدا شوے وو ـ دغه وجه وه چه هغه که امير دوست محمد خان او د هغه ځامن په اوله کښې نظر بند ساتلی وو نو په دغه ورځو کښې هم د هغه په اشاره د دوی دقيد نه اوتښتيدل ـ او ډير زر د اوزبکو اولس د امير دوست محمد خان د جنډے لاندے راجمع شول ـ دغه وخت ميکناټن ته د خپلے غلطے پاليسۍ نتيجے څرګندے شوے ـ په ملک کښې په يو لور د دوست محمد خان پره جذبه په زياتيده وه ـ په بل لور شاه شجاع او د هغه وفادار خلق هم د انګريزانو په دے رويه سخت ناراض وو ـ لکه چه کامران د هرات نه شاه شجاع ته داليکلی وو چه زه له ناکامه د انګريزانو د سفير سره ګذران کوم ـ په حقيقت کښې زما ټول اميدونه د تا سره غوټه دی ـ په هرات کښې د انګريزانو دا سفير "د تا د" نوے يو انګريز افسر وو ـ د ده په کارونو د خلقو په زړونو کښې دا خطره پيدا شوی وه چه انګريزانو د ايران په مقابله کښې د هرات مدد ځکه کولو چه دوی په خپله د دے ښار قبضے ته ليواله وو ـ

امير دوست محمد خان او د هغه ځامن چه د بخارا نه اوتښتيدل نو د ډيرو ګړاونو نه پس "خلوم" ته رااورسيدل ـ دغه وخت کښې په ټول افغانستان کښې د انګريزانو برخلاف جوش وخروش خور شوے وو ـ په لږو ورځو کښې د دوست محمد خان سره پنځه زره فوځ جمع شو ـ او د دے فوځ په مدد امير د انګريزانو سره واړه واړه جنګونه شروع کړل ـ د دے جنګونو په دوران کښې څنے هندوستانی سپاهيان هم د انګريزانو نه امير ته واوړيدل ـ د "سغصنګان" په مقام د امير دوست محمد خان او د انګريزی فوځونو ترمينځه يو جنګ اوشو ـ چه په هغ کښې امير بريالے شو ـ د دے په نيتجه کښې انګريزی فوځونه ټول باميان ته راغونډ شول ـ د امير او انګريزی فوځونو يو مقابله بيا اوشوه ـ چه په هغ کښې امير دوست محمد خان ماتے اوکړه ـ او هغه کوهستان ته لاړ ـ

په کوهستان کښې امير دوست محمد خان ته په ډکه خُله هرکلے اووئيلے شو ـ او ډير سرداران د هغه خوا ته راجمع شول ـ په دے ورځو کښې د کابل نه هم امير دوست محمد خان ته د مرستے او کومک پيغامونه رسيدلی وو ـ دا ټولے خبرے د سفير ميکناټن او شاه شجاع نه پټے نهٔ وے ـ يو طرف ته دا مصيبت وو ، بل طرف ته سفير هم د انګريزانو د شان وشوکت په کمزورتيا پوه شوے وو ـ سيکانو هم په دے ورځو کښې د کابل اوپيښو

ترمیڅه اباد پښتنو قبائیلو ته لمسون کولو- دغه وخت کښې د دے سفیر دا پوخ یقین راغلے وو چه د فوځ نه بغیر کامیابي مشکله ده-

امیر دوست محمد خان په کوهستان کښې خپله سرګرمۍ شروع کړه- میکناټن د هغهٔ په مقابله کښې جرنیل سیل مقرر کړو- ولے دوست محمد خان جرنیل سیل په یوه پښه ګډ کړو- امیر بهٔ کله په دره غوربند کښې سرا وښکلو- کله به بخارا ته اووت- او کله به د کابل خوا اوشا ته راغے- د امیر دوست محمد خان او انګریزی فوځونو اخری مقابله په ۲ ر نومبر سنه ۱۸۴۰ء کښې د «پروان» درے په مقام راغله- په دے جنګ کښې امیر کامیاب شو- او انګریزی فوځونه داسے وارخطا شول چه الیګزینډر برنس پولټیکل افسر چه د دے فوځونو سره وو سفیر میکناټن ته په دے چیټۍ لیکلو مجبور شو چه د انګریزی فوځونو د پاره د کابل نه بغیر د پناه بل ځائے نشته- د دے رائے مطابق انګریزی فوځونه کابل ته راغونډ شول- او د دوست محمد خان د مېلې په تابیا کښې ګډیا شول- ولے معلومه نهٔ ده چه امیر دوست محمد خان د دے خپلے فتح نه ولے فائده وا نهٔ خستله- د دے فتح په دریمه ورځ امیر دوست محمد خان د خپل یو ملګری سره په خاموشۍ کابل ته راغے- او خپل ځان ئے انګریزی سفیر میکناټن ته حواله کړو- د انګریزی فوځونو سالار ره سرجان کین « د دوست محمد خان د دے رویے په مقله دا وائی چه چونکه هغهٔ ته دا معلومه وه چه اګرچه اوس هم د پښتنو جوش وخروش زیات دے ولے د دوئ دا جوش او وفاداری هغهٔ ته قابل اعتماد نهٔ ښکاریدله- نو د انګریزانو نه دیو شکست خورده قیدی په نسبت د یو فاتح په حیثیت کښې هغهٔ خپل ځان قید ته ورکول غوره کړل- او ځکه ئے خپل ځان سفیر ته حواله کړو- به هر حال د دے وجه چه هر څه وی دوست محمد خان په خپله رضا ځان ورکړو- او څو ورځې پس هغه دیوے مضبوطے بدرګے سره د شاهی قیدی په حیثیت هندوستان ته اولیږلے شو-

چه دوست محمد خان د ملک نه اووتلو نو د سفیر زړهٔ نه هم تولے ویرے او خطرے اووتلے- د دے نه پس هغهٔ د خپلے پالیسۍ په نفاذ کښې هیڅ خطره او بندیز نهٔ محسوس کولو- د شاه شجاع د زړهٔ نه هم د خطراتو تورے لړے لرے شوے- د هغهٔ امیدونه بیا تاند شول- ځکه چه د هغهٔ رقیب د بارک زو د آهنی عزم سردار د ملک نه خارج شوے وو- او د کابل تخت اوس په ظاهره کښې هغهٔ ته یواځے پاتے شوے وو-

که چرے شاه شجاع د خپلو خلقو خوښ وے نو ددے نه پس په افغانستان کښې د انګریزی فوځونو د پاتے کیدو نهٔ څه ضرورت وو او نهٔ څه جواز۔ ولے دمیکناټن د پالیسۍ په وجه ټول خلق د شاه شجاع نه ناراض وو۔ ځکه چه د انګریزانو دا مصیبت هم ددهٔ په وجه په خلقو نازل شوے وو۔ او چونکه دے سفیر د شاه شجاع نه یو ګوډاګے جوړ کړے وو نو د نورو سردارانو سره چه به ئے کوم سلوک کولو۔ هغه به یقیناً ډیر سپک وو۔ د شجاع نه د پښتنو غټه ګیله هم دا وه چه ددے بے واکه بے اختیاره بادشاه په وجه انګریزان په دے ملک مسلط شوی دی۔ شاه شجاع هم د خپلے بے ارزښۍ او بے واکۍ نه ښهٔ خبر وو۔ چه امیر دوست محمد خان د مینځ نه اووتلو نو ددهٔ په زړهٔ کښې د انګریزی سفیر ددے سختے پالیسۍ نه د خپل ځان د ازادولو خواهش پیدا شو۔ او چه د انګریزی فوځونو د ناوړه کارونو د لاسه خلق تنګ شول۔ او شاه ته ئے شکایت اوکړو نو شاه ورته په جواب کښې اووئیل "از شما هیچ نمی آید"۔ یعنی د تاسو نه هیڅ نهٔ کیږی۔ د خلقو په پارولو او لمسولو کښې د شاه شجاع هم څه لاس وو۔ او ددے په حقله انګریزانو ته څه شهادتونه هم په لاس راغلی وو۔ په ملک کښې چه د انګریزانو د موجودګۍ او د دوئ د پالیسی په وجه کوم عام مخالفت او نفرت په اولس کښې خور شوے وو۔ د هغ نه څنې دوراندیش انګریزی افسرانو د حالاتو د سنګینۍ اندازه لګوله۔ او هغوی ته د خپل حالت کمزورتیا معلومه شوی وه۔ ولے دکرنل "میلسن" په الفاظو کښې میکناټن به دے ټولو حالاتو ته په رتهورتهو کتل۔ خود زړهٔ سترګے ئے ړندے وے۔ او د سر په سترګو به ئے د پښو مینځ ته کتل۔ دغه وجه وه چه په فروری سنه ۱۸۴۱ء کښې هغهٔ داسے لیکلی وو چه "سرے ټولو خبرو ته فکر اوکړی نو حاضر ساعت په ملک کښې داسے امن امان دے چه بنده ورته حیرانیږی"

ولے دامن وامان دا حال وو چه غلجیانو بغاوت کړے وو۔ د "زمینداور" علاقه کښې هم بغاوت شوے وو۔ او خلق ئے لا هغه شان اطاعت ته مائل نهٔ وو۔ په هرات کښې هم خلقو د انګریزانو په نسبت د ایرانیانو اطاعت ته ترجیح ورکوله۔ ددے حالاتو باوجود میکناټن په ۳ر اګست سنه ۱۸۴۱ء دا راۓ ښکاره کړه چه د جنګ موجوده سامان د ټول ملک د انتظام د پاره ښهٔ کافی دے۔ او ټول تجویزونه دامید مطابق په کامیابۍ پوره کیدونکی دی"

د سنه ۱۸۴۱ء په مئ کښې د انګلستان او هندوستان دواړو حکومتونو په منشا میکناټن

دمرغ دکمولو اراده اوکړه - ځکه چه اوس هغهٔ ته په ملک کښې امن وامان ښکاره کيږ
په دے عرض هغهٔ د قبائيلو سرداران کابل ته رااوغوښتل - او هغوی ته ئے د هغوی
د ماجبونو او وظيفو دکمولو په حقله خبر ورکړو - دغه وخت دے سردارانو دا محسوس
کړه چه زمونږ سره کوم لوظونه او وعدے شوے وے هغه د ځپل غرض او ديو وخت
دپاره وے - په دے خبره دوئ دانګريزانو د خيرنه هم نااميد شول - او د دے نتيجه
دا شوه چه دے خلقو د هندوستان سره د انګريزی فوځ د تګ راتګ لارے بندے کړے.
په دے ورځو کښے اکبرخان هم رارسيدلے وو او د ځپلو مرستيالو قيادت ئے په لاس کښے
اخستے وو - په اکتوبر ۱۸۴۱ء کښے پوليټکل افسر مسټر الیګزينډر برنس ته د د دے د
بنديدلو پته لګيدلی وه - او دا ورته هم معلومه شوی وه چه ټول ملک د انګريزانو
برخلاف بلوے ته تيار شوے دے - ولے دوئ لا هغه شان داخبرے توقے ګڼلے

د نومبر په دويم تاريخ دانګريزانو خلاف بغاوت څرګنده شکل اختيار کړو - حقيقت
دا دے چه دا سفير (ميکناټن) او د هغهٔ پوليټکل اوفسر مسټر اليګزينډر برنس
چه د سلطان محمد خان په مال کښے موږ د دهٔ ذکر کړے دے - د هغه درنو او
سنجيده اخلاقو نه بيخی خالی وو - کوم چه د داسے عهدو د خاوندانو د پاره ضرور
وی - په تيره تيره د برنس اخلاقی حالت خو د پښتنو د غيرت په لمن يو تور داغ وو-
په دے ورځو کښے به انګريزی افسرانو داسے ناوړه کارونه کول چه د پښتنو په ناموس
او ابروئے هم صرفه نهٔ کوله - دغه وجه وه چه ځنے خلقو د « مسټر برنس » په ښکله
حمله اوکړه - او هغهٔ ئے سره د ځپلو نوکرانو اووژلو - د دے نه پس ميکناټن سفير
هم د اکبرخان سره د جرګے په وخت کښے د غازيانو دلاسه اووژلے شو - په د ے
خبره انګريزان ډير وارخطا شول - په ۲۲، نومبر ۱۸۴۱ء اکبر خان هم د غازيانو
سره ملګرے شو - دغه وخت د انګريزی فوځ په افسرانو کښے هم ډيره بے اتفاقی وه - يو
تجويز به منظور شوے نهٔ وو چه هغه سمدستی بيا منسوخ شو - دا بے اتفاقی ترآخر
وخته جاری وه - انګريزی فوځ په څلور زره سورو اودولس زره پياده سپاهيانو مشتمل
وو - دے ټول فوځ د غازيانو په مقابله کښے وسله کيښوه - او د فيصلے مطابق په ۶،
جنوری ۱۸۴۲ء د کابل نه د جلال آباد په لور رار وان شول - د ژمی موسم وو - لارے او
درے په واوړو بندے وے - دا بے سروسامانه فوځ څه خو د يخنئ، واوړو او لوږو تندود
لاسه تباه شو - او څوک چه ژوندی پاتے وو - هغوی د پښتنو د لاسه اووژلے شول - په ټول

فوځ کښې صرف یو سړے ډاکټر " براډون " د انګریزی فوځ د تباهئ د دے غمژنے قیصے اوروړلو د پاره ژوندے جلال اباد ته رااوسید ـ په دے هولناکے واقعے هندوستان غمژن نهٔ شو بلکه انګلستان هم په ویرکښ شو ـ او په مینځنۍ ایشیا کښې د انګریزی سلطنت د اقتدار د زړهٔ خوشحالوونکی خوب هیځ څه تعبیر حاصل نهٔ شو ـ د دے واقع په نتیجه کښې لارډ آک لینډ بیرته د هندوستان نه او غوښتلے شو ـ بدنصیب شاه شجاع هم د خپلو دوستانو د تباهئ نه پس ډیره موده ژوندے پاتے نهٔ شو ـ او په ځلورم اپریل ۱۸۴۲ء د بارک زود یو سردار د لاسه د هغهٔ د لړزانده ژوند خاتمه اوشوه ـ ولے د شاه شجاع د قتل په وجه په ملک کښې اړے ګړے نور هم زیات شو ـ او د شاه شجاع په وجه چه پښتانهٔ څه لږ ډیر په یو مرکز راغونډ شوی وو هغوی بیا تار په تار شول ـ ټولو سردارانو لاس په توره کړو ـ او په خپلو کښې اونښتل ـ د دے بدامنۍ په وجه د قندهار، غزنی او جلال آباد فوځونو هم څه لږه ډیره ساه واخستله ـ او د تیارئ موقع په لاس ورغله ـ

د لارډ آک لینډ په ځائے لارډ ایلن برو د هندوستان ګورنر جنرل مقرر شو ـ هغهٔ ته د افغانستان په معاملاتو کښې د مداخلت نهٔ کولو هدایت شوے وو ـ ولے کوم فوځونه چه په افغانستان کښې ګیر وو د هغوی د ازادولو د پاره ئے دوه لوئے فوځونه د سنده او خیبر په لار افغانستان ته اولیږل ـ د خیبر د لارے فوځ د جنرل پالک په کمان کښې وو ـ د دے فوځ د ستمبر ۱۸۴۲ء په اخر کښې دوباره په کابل قبضه اوکړه ـ او د انګریزانو د سپکاوی او قتلولو په بدل کښې د کابل ښائسته مسقف بازار په دارو والوزولو ـ په زرګونو نر، ښځې، لوئے، واړهٔ ئے اووژل ـ او بیا ئے خپل قیدیان ترلاسه کړل ـ او د هند په لور روان شو ـ دغه شان د افغانستان دا خونړے جنګ ختم شو ـ په دے جنګ کښې انګریزانو ته ډیر نقصان اورسید ـ په دے جنګونو کښې د هغوی شل زره سپاهیان او وژلے شول ـ یو نیم کروړ پونډه ئے په جنګ خرځ راغے ـ او د دوئ مقصد هم پوره نهٔ شو ـ دا ټول خرڅونه او کوششونه دوئ د دے د پاره کړی وو چه دوئ د یو خود اختیاره او ازاد خیال رعیت په څټ باندے یو داسے بادشاه کښینولو چه هغه خوځله د دے نه ورانده هم د دے خلقو له خوا شړلے شوے وو ـ او د هغهٔ د میشته کولو او زرغونولو کار داسے انګریزی افسرانو ته حواله شوے وو چه هغوی د دے دومره لوئے ذمه وارئ اهلیت نهٔ لرلو ـ

د شاه شجاع د قتلیدو نه پس د کابل په تخت د شاه شجاع دوئم ځوئے فتح جنګ د

انګریزی فوځونو له خوا کښېنولے شوے وو. دا شهزاده د خپل پلار د قتل نه پس د کابل نه تښتېدلے وو. ولے د پالک د فوځونو سره دوباره کابل ته تلے وو. خو چه انګریزی فوځونه د کابل نه بیرته راغلل نو دے هم اووژلے شو.

دځینے مؤرخینو په خیال کښے د افغانستان د دے جنګ ذمه وار انګریزان دی. ځکه چه دوئ هیڅ بے هیڅه په افغانستان حمله اوکړه. او شاه شجاع ته ئے په دوست محمد خان ترجیح ورکړه. په دغه ورځو کښے نه خو په هندوستان باندے د روس د حملے څه امکان وو او نه دوست محمد خان د انګریزانو سره د مخالفت اراده لرله. پس که چرے انګریزانو دافغانستان په کورنو معاملو کښے مداخلت نه وے کړے نو نه به په دا سے بے دردئ د هندوستان دومره دولت خرڅ شوے وو. او نه به په دا سے بے رحمئ د هندوستانیانو او پښتنو وینے بهیدلے وے.

ځکه چه وړاندے اوویلے شول امیر دوست محمد خان چه د شاهی قیدی په حیثیت هندوستان ته راوستے شو. نو په اول کښے په کلکته کښے نظربند وو. ولے د دے ځائے اب و هوا د هغه د طبیعت موافق نه وه. نو بیا په په مسوری کښے اوسیده. انګریزانو د خپل قوت او شان وشوکت او نمائش په غرض هغه ته خپل فوځونه، جنګی سازوسامان کارخانے او جهازونه ښئیلی وو. او د دے نه د انګریزی حکومت دا مطلب وو. چه د دے جنګ شان وشوکت او سازو سامان په لیدو به د دوست محمد خان په زړه کښے د انګریزانو د عظیم طاقت احساس وو. ولے د دے احساس په هغه کښے د خپل ځان او د خپل مملکت په باب کښے احساس کمتری نه وو پیدا کړے. دغه وجه وه چه د دے نمائش نه چه د انګریزانو کوم مقصد وو هغه حاصل نه شو. او هر کله چه انګریزان د افغانستان په معاملو کښے په ډیره بده رنګه ناکامیاب شول. نو د هغوی د پاره بل څه لاره نه وه. چه د افغانستان تخت بیا امیر دوست محمد خان ته پیش کړی. چنانچه "لارډ ایلن برو" ګورنر جنرل په ۲۵ ، اکتوبر سنه ۱۸۴۲ء هغه د کابل په لور رخصت کړو. په لار کښے د لاهور په مقام د سیکانو راجه شیر سنګه په ډیره شانداره طریقه د هغه استقبال اوکړو.

د دوست محمد خان په غیر حاضرئ کښے د کابل تخت د هغه د پاره خالی پروت وو. خپلو خلقو په خپلو زړونو کښے هغه د بادشاهئ د پاره منتخب کړے وو. او کوم وخت چه هغه کابل ته دوباره راغے نو ټولو خلقو په ډیرے خوشحالئ د هغه اطاعت ته غاړه کیښوه. امیر دوست محمد خان چه په کوم حال کښے خپله بادشاهی پرېښې وه. هغه هم هغه شان

وه - یعنی د کابل علاقه د هند وکش تر غرونو او د غزنی علاقه د هغهٔ په حکومت کښې شامله وه - په قندهار باندے د هغهٔ میرنی ورونه حاکمان وو او په هرات باندے د شاه محمود ځوی کامران حکومت کولو -

# د سیکانو او انګریزانو مخالفت

هغه عهد نامه چه په سنه ۱۸۳۸ کښې د سیکانو، انګریزانو او شاه شجاع ترمینځه شوی وه - اګرچه د شاه شجاع په مرګ بے اثره شوی وه -

لیکن د سیکانو په لاس کښې د یوسیاسی حربے په توګه موجوده وه - په دے کښې شک نشته چه دا باسیند په قبله ټوله علاقه سره د پیښوره د کال (سنه ۱۸۲۳) نه په دغه کال سردار عظیم خان د نوښار په مقام د سیکانو سره د مقابلے کولو نه بغیر تښتیدلے وو - د بارک زو د لاسه وتلی وه - او د سیکانو اثر پرے قائم شوے وو - ولے په دے علاقه د سیکانو مستقل حکومت څه لږه موده پس قائم شو - او د افغانستان د جنګ اول په دوران کښې د پیښور او د دے سره په ملحقه ټولے علاقے د سیکانو اقتدار قائم وو - لیکن سره د دے چه شاه شجاع د دے ټولو علاقو د ملکیت نه په خپله مرضئ دست بردار شوے وو - بیا هم د خپلے سرمائی دارالخلافے (پیښور) د قبضے زوړ ارمان د هغهٔ د زړهٔ نه نهٔ وو وتلے او نهٔ دا تلوسه د امیر دوست محمد خان په زړهٔ کښې سړه شوی وه - دغه وجه وه چه هرکله په کال سنه ۱۸۳۹ کښې شاه شجاع د انګریزی فوځونو په کومک دو باره د کابل باد شاه شو - او دوست محمد خان د شاهی قیدی په حیثیت هندستان ته اولیږلے شو نو دغه وخت د شاه شجاع په زړهٔ کښې د خپلے سرمائی دارالخلافے ارمانونه بیا راژوندی شول -

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د شاه شجاع سره انګریزی سفیر "میکناټن" اګر چه یو لائق سړے وو - ولے په هغهٔ کښې یو غټ دا نقص وو چه خپله هره خبره به ئے درسته ګڼله - نو کوم وخت چه شاه شجاع د دے خپل خواهش ذکر د سفیر سره او کړو نو د سفیر زړهٔ هم د پیښور قبضے ته لیواله شو - او حکومت هند ته ئے د دے سه طاقی معاهدے د منسوخئ او د دے نه د انحراف تجویز پیش کړو - او دا مشوره ئے ورکړه چه دا باسیند نه په قبله د پیښور سره ملحقه علاقے دِ شاه شجاع ته ورکړے

شي ـ په دے تجویز کښې یواځې د شاه شجاع خواهش پوره کول مد نظر نه وو ـ بلکه د
کابل د قبضې او د افغانستان سره د امدو رفت د پاره د پیښور غوندے اهم مقام د سیکانو
په قبضه کښې پاتے کیدل د انګریزانو د مفادو د پاره هم موزون نه وو ـ د غه وجه وه چه
اګرچه حکومت هند په دے موقع په داسے غزیدلو سترګو د خپلے وعدے نه اوړیدلو ته هو
تیار نه شو ـ ولے د دے منلو ته رضامند معلومیده ـ او که چرے په افغانستان کښې دومره
زر د انګریزانو برخلاف د واقعاتو رخ نه وے بدل شوے نو ډیره ممکنه ده چه په دے
مشوره عمل شوے وے ـ او حالاتو څه نوے شکل اختیار کړے وے ـ ولے هر کله چه په کابل
کښې انګریزی سفیر میکناټن او د هغه پولیټیکل آفیسر " الیګزینډر برنس " اوو ژلے شول او
په انګریزی فوځونو هم باجرګیه شو ـ نو انګریزی حکومت په افغانستان باندے د خپل اقتدار
د قائمولو په غرض د خپلو فوځونو د قیام د پاره د پیښور مرکزیت او اهمیت په شدت
سره محسوس کړو ـ ولے ترکومه حده چه د دے منصوبے د سیکانو د مفادو سره تعلق
وو هغوی چه د دے نه خبر شول نو دا خبره پر ډیره بده اولګیده ـ او دا ځ د خپل ریاست د
تالاکیدو او ټکړے ټکړے کیدو یو منصوبه او ګڼله ـ او دا خیال ئے اوکړو ـ چه انګریزان زمونږ
د هغه دشمنانو ( پښتنو ) سره زمونږ د ریاست د ویش په باب کښې مشورے کوی چه
مونږ ورنه ملک په زور اخستے دے ـ او زمونږ د جرنیلانو او سپاهیانو وینے پرے توے
شوی دی ـ د غه وجه وه چه انګریزانو ته د دوئ زړونه خیرن شول ـ ولے د سیکانو
خفګان یا بغض او کینے د انګریزانو سترګے د خپلو مفادو د مفاظت نه نه شوے بندولے ـ
دوئ ته د پیښور اهمیت معلوم شوے وو ـ او سترګے ئے ورته خړے کړے وے ـ

د افغانستان د اول جنګ نه پس زر په زر داسے واقعات اوشول چه د هغې په
بنا د انګریزانو او سیکانو ترمینځه بدګمانئ او شکونه نور هم زیات شول ـ په کال
۱۸۴۳ء کښې " لارډ ایلن برو " سرچارلس نیپیئر سنده ته په دے غرض اولیږلو چه هغه د
سنده د الحاق په مقاله خپل رپورټ پیش کړی ـ انګریزانو د افغانستان په جنګ کښې د
سنده د الحاق اراده کړی وه ـ سرچارلس نیپیئر مدعا چونکه د سنده الحاق وو نو د جنګ
شروع کولو د پاره ئے خوشي آغ باغ اولتولے ـ او د تالپوری امیرانو سره ئے هیڅ بے هیڅه
اوبه خړے کړے ـ او نتیجه دا شوه چه د سنده د تالپوری امیرانو او د انګریزانو ترمینځه
د " میانئ " او " داهوکی " په مقاماتو جنګونه اوشول ـ په دے جنګونو کښې تالپوری
امیرانو شکست اوموند ـ او سنده په برطانوی هند کښې شامل شو ـ د " ایلن برو " ګورنر

جنرل دا فعل په هرلحاظ ناوړه وه. د سنده او برطانوی حکومتونو ترمینځ تعلقات دوستانه وو. د دواړو حکومتونو ترمینځه معاهدے شوے وے. چه یو شرط په کښے دا هم وو. چه فریقین دا اقرار کوی چه دیو بل په علاقو به بلوسه نهٔ کوی. او یو بل ته به اوبهٔ نهٔ حُروی :- ددے اقرار باوجود ایلن برو په ډیره ذلیله طریقه دا معاهده تر پښو لاندے کړه. او په یو داسے ریاست ئے حمله اوکړه چه دوئ ته ئے هیڅ نهٔ وو ویلی. او په مختلفو وختونو کښے ئے د انګریزی حکومت سره ډیر قیمتی مدد هم کړے وو. د سنده دا الحاق د انصاف او په اخلاقی لحاظ سره یو ناجائز کار وو. چه د تهذیب و انصاف د یو دعویدار حکومت د یو حاکم اعلیٰ په حکم شوے وو. دحکومت هند دا فعل یو داسے ناجائز فعل وو چه د ایسټ انډیا کمپنۍ ډائریکټرانو هم ددے الحاق مخالفت اوکړو. د سنده الحاق د سیکانو سره هم دخپل ریاست په باب کښے ویره پیدا کړه. ولے اول ددے نه چه دسیکانو او انګریزانو د مخالفت او جنګونو حال بیان کړے شی - دا به ښه وی چه د سیکانو دریاست حال لږ په تفصیل سره بیان شی -

لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی د سیکانو د ریاست بانی رنجیت سنګهه وو. چه په ابتدا کښے د سدوزی بادشاه زمان شاه د لوری نه په یو اضطراری حالت کښے د پنجاب ګورنر مقرر شو. او وروستو بیا د سدوزو او محمدزو د کورنی مخالفت او جنګونو په وجه ئے نهٔ صرف خپل ځان ازاد کړو. بلکه د دوئ د سلطنت په یو زرخیزه او وسیعه خطه ئے قبضه هم اوکړه. او د یو خود مختار راجا په حیثیت د سیک ریاست بانی شو. سردار رنجیت سنګهه په پنجاب باندے قریبًا څلویښت کاله او دا باسینده په قبله دښتنو په علاقه باندے پنځلس کاله حکومت کولو نه پس په کال ۱۸۳۹ء کښے مړ شو. رنجیت سنګهه یو ډیر چالاک او هوښیار انسان وو. هغهٔ د انګریزانو د روزافزون طاقت د مقابلے نه په چل ول او دوراندیشئ خپل ځان ژغورلے وو. او په کال ۱۸۰۹ء کښے ئے د انګریزانو سره یو دوستانه معاهده کړی وه. او ددے معاهدے په وجه چه هغه د انګریزانو نه بے غمه شو نو د سدوزو د سلطنت نه ئے د علاقو په شوکولو لاس پورے کړو. په پنجاب کښے ئے امن وامان قائم کړو. او دخپل ریاست د پاره ئے یو بهترین فوځ تیار کړو. چه د یورپین افسرانو په نګرانئ کښے د هغه زمانے د جنګ په نوی نوی طریقو ښهٔ پوه وو. او کوم وخت چه دا بوډا مها راجا مړ کید و نو دخپل ریاست د حفاظت د پاره ئے په ساز او سامان اراسته یو لوئ فوځ پریښے وو. ولے د رنجیت سنګهه نه پس د هغهٔ په جانشینو

کښې دهغهٔ دپاڼ څوک نهٔ وو. نو په دوئ کښې داسې سازشونه او قتلونه شروع شول. چه د سیکانو د دیرش کلیز ریاست دیوالونه ئې ترو ږمه اوړچکول.

درنجیت سنګه د مرګ نه پس د هغهٔ ځوئ کهړک سنګه په ګدئ کښیناست. د دهٔ په حقله دا مشهوره وه چه دے دراجا ناجائز ځوئ دے. دغه وجه وه چه ددهٔ په ګدی نشینئ د سازشونو بازار تود شو. په دے سازشونو کښې دد ے راجا یو سرګرم مرستیال چیت سنګه او وژلے شو. او په دهٔ پسې بل کال ته کهړک سنګه هم مړشو. او د دهٔ ځوئ چه دخپل پلار دجنازے درسوماتو د اداکولو نه پس په کومه دروازه تیریدٍو نو هغه دروازه پرے راپریوته او دغه شان دے هم اتفاقاً مړشو یا قصداً مړکړے شو.

د دے نه پس د کهړک سنګه دکونډے په سرپرستئ کښې د رنجیت سنګه یو بل ځوئ شیرسنګه دهغ د نائب په ډول ګدی نشین شو. دغه وخت کښې دجموں د ډوګره ورونو او ” سندهیاں والا “ سردارانو ترمینځه د اقتدار د حصول کشمکش په ډیر شدت روان وو. شیر سنګه په کال ۱۸۴۱ئ کښې د خپلې بادشاهئ اعلان اوکړو. ولے دغه وخت ډوګره ورونو دخپلو رقیب سردارانو سره صلح اوکړه. او د دے نتیجه دا شوه چه په کال ۱۸۴۳ئ کښې شیر سنګه هم اووژلے شو. د شیر سنګه د مرګ نه پس د سیکانو ترمینځه د سازشونو او قتلونو بازار نور هم ګرم شو. آخر د مهاراجه رنجیت سنګه یو نابالغ ځوی دلیپ سنګه ګدی نشین شو. او د دهٔ مور ” رانی جندان “ چه د رنجیت سنګه کشره ښځه وه. ددهٔ سرپرسته مقرر شوه.

رنجیت سنګه خپلو فوځونو ته د فرانسیسی او امریکنی افسرانو په نګرانئ کښې دنوے زمانې د جنګ په طریقه ښهٔ تربیت ورکړے او خپل فوځئ طاقت ئې ښهٔ زیات کړے وو. لیکن هغه یو هوښیار او دور اندیشی بنیادم وو. سره د دے چه د هغهٔ سره یو اعلیٰ فوځ موجود وو. بیا هم هغهٔ په خپل عقل او دوراندیشئ د انګریزانو سره دڅه تصادم نه ځان ساتلے وو. ولے چه رنجیت سنګه مړشو نو د هغهٔ په وارثانو کښې بل څوک د دومره مضبوط شخصیت او دور اندیشئ خاوند نهٔ وو چه دا مضبوط فوځ ئې په قابو کښې ساتلے وے. د سیک سردارانو د درباری سازشونو په نتیجه کښې دا فوځ نور هم خود سره او بے قابو شو. او د انګریزانو سره سنګرا ږمولو ته لیواله شو. هسې خو د دلیپ سنګه په وخت کښې لال سنګه د هغهٔ وزیر او تیج سنګه د فوځونو سالار اعلیٰ وو. ولے په فوځ باندے د دوئ څه اثر نهٔ وو. بل لور ته د سیک دربار ذمه وار امیران د انګریزانو د روز

افزون طاقت په وجه د خپل ریاست د حفاظت او بقا په باب کښې شکمن شوی وو. په دې ورځو کښې په سیک دربار کښې د اقتدار په لحاظ درې ډلې وې. یوه ډله د "رانی جنداں" وه چه د رنجیت سنګه کشره رانۍ، د دلیپ سنګه مور او د لوئې حوصلې میرمن وه. او په خپله پره کښې ئې ډیر مرستیال لرل. بله ډله د ګلاب سنګه ډوګره وه چه د رنجیت سنګه د لوری نه د جموں حاکم مقرر شوې وو. او دریمه ډله د فوځ وه. او دا په ټولو غالبه وه. او ټول به د فوځ نه په ویره کښې وو.

د ستلج سیند نه په نمر خاته د سیکانو ځنې داسې واړه واړه سرداران وو چه هغوی خپل ځانونه د انګریزانو حفاظت ته سپارلی وو. د انګریزانو او رنجیت سنګه ترمینځه په معاهده ۱۸۰۹ء کښې دا خبره منلی شوی وه چه سیک ریاست به په دې خلقو بلوسه نۀ کوی. د دې سردارانو ځه زمکې د ستلج نه په قبله د سیکانو په ریاست کښې هم وې. په دې ورځو کښې د انګریزانو دې زیر حفاظت سیکانو ته د دربار لاهور د سیک افسرانو له خوا د خپلو جائدادونو نه د فائدې اوچتولو په لار کښې مشکلات پیدا شول. او دا خبره د هغه معاهدې خلاف ورزی وه. د دې نه علاوه د ستلج په نمر خاته د انګریزی فوځونو موجودګی هم د سیکانو په زړه نۀ ځائیدله.

د دربار لاهور سیک افسرانو او مشرانو چه خپل فوځ د قابو نه بهر کیدو ته نزدو اولیدۀ نو دوئ دا غوره اوګڼله چه داسرکښ فوځ په انګریزانو ور واچوی. په دې کښې د دوئ دوه غرضه وو. یو خو دا چه د انګریزانو سره په جنګیدلو به د دې فوځ هوش په ځائې شی او په قابو کښې به راشی. او بل دا چه دوئ ته به د خپل طاقت د مظاهرې موقع هم په لاس ورشی. او د انګریزانو سره به د دوی د زور ازمایئ ارمان پوره شی. دا ګمان هم کیدلو چه د انګریزانو جنګ ته د سیکانو په لمسولو کښې د "رانی جنداں" ډیره برخه وه. د هغې دا غرض وو چه په دې طریقه به د سیک فوځ او سیک سردارانو طاقت کم شی. او د هغې ځوئې دلیپ سنګه به په ګدۍ قائم پاتې شی.

غرض د رانی جنداں په حکم سیک فوځ په ستلج پورې وتو. او په انګریزی علاقه ئې حمله اوکړه. او په ۱۳، دسمبر ۱۸۴۵ء ئې د انګریزانو برخلاف اعلان جنګ اوکړو. د رانۍ فوځ په ډیرې بهادرۍ او جنګیدو. ولې افسران ئې ښۀ نۀ وو. او په دې وجه ئې شکست اوموندۀ. "سرهیوګف" چه د انګریزی فوځونو کماندار وو د "مدکی" په مقام سیکانو ته شکست ورکړه. په ۲۸، جنوری ۱۸۴۶ء د "علی وال" په مقام سیکانو

بیا سخته تیښته اوکړه. د دے جنګ آخری معرکه د فیروز پور په نمرخاته د "سوبراؤں" په مقام اوشوه. په معرکه کښے هم سیک فوځ تیښته اوکړه. تقریبًا لس زره سیکان په جنګ کښے اووژلے شول. او څه ګرفتار شول. د دے شکست نه پس د انګریزانو او سیکانو ترمینځه په ۹ مارچ سنه ۱۸۴۶ء یوه معاهده اوشوه.

د دے معاهدے له مخه د ستلج او بیاس سیندونو ترمینځ علاقه د سیکانو د ریاست نه اوشلولے شوه. او په انګریزی حکومت کښے شامله کړے شوه. دلیپ سنګهه د مهاراجا په ډول دوباره د سیک ریاست والی اومنلے شو. او رانی جندان د هغهٔ سرپرسته مقرر شوه. د جنګ تاوان یو نیم کروړ روپۍ په سیک ریاست عائد کړے شو. او د دے په بدل کښے پنځوس لکه روپۍ نغدے د سیک دربار نه وصول کړے شوے. او د باقی یو کروړ روپو په عوض کښے د جالندهر دوآبه او د کشمیر صوبه د سیکانو د ریاست نه واخستلے شوے. د کشمیر صوبه انګریزانو د (۷۵) لکه نانک شاهی روپو (چه په انګریزی سکه کښے پنځوس لکه روپۍ کیدلے) په بدل کښے په ګلاب سنګهه ډوګره راجا خرڅ کړه. د انګریزانو دا فعل د سند نه د الحاق نه هم زیات ناجائز وو. د پنځوسو لکو روپو د پاره د کشمیر په لکونو مسلمانان د ګلاب سنګهه په شان په ګلاب سنګهه غوندے ظالم انسان باندے خرڅول د تهذیب و انصاف د دعوے دارو انګریزانو یو داسے شرمناک او حد په صورته ذلیل فعل دے چه د هغے بل مثال به په تاریخ کښے او نهٔ موندلے شی. د انګریزی حکومت د دے انتهائی خود غرضانه فعل په نتیجه کښے د کشمیر بد نصیبه مسلمانان لا ترنن ورځے ترنیږی. د معاهدے له مخه د سیکانو په فوځ کښے تخفیف اوشو. او کوم فوځونه چه په تخفیف کښے راغلل هغوی ته خپلے بقائے او تنخواګانے ورکړے شوے. د انګریزی حکومت د لوری نه سر هنری منټګمری لارنس په سیک دربار کښے ریزیډنټ مقرر شو. د هند ګورنر جنرل لارډ هارډنګ په دے خبره هم رضا شو چه د مهاراجا دلیپ سنګهه د ذاتی حفاظت او په پنجاب کښے د امن و امان د قائمولو په غرض د انګریزی فوځ یوه حصه د یو مقرر عرصے د پاره پریږدی. د کشمیر په باب کښے د ګلاب سنګهه سره جدا معاهده اوشوه. او دربار لاهور او ګلاب سنګهه دواړو دا خبره اومنله چه خپل تنازعات به انګریزی حکومت ته پیش کوی. او د هغوی فیصله به منی. په دغه وخت کښے د پښتنو علاقه هم د سیکانو په ریاست کښے شامله وه. ولے په دے خپله علاقه کښے به پښتانهٔ د خپلے پښتونولۍ په ضابطے چلیدل. ځکه چه سیکان نه خو د دے قابل وو چه د خپل ریاست د پاره څه آئین وضع کړی.

او نهٔ په دے قادر وو چه پښتانهٔ په خپل وضع کړی قانون اماده کړی ۔

د انګریزانو او سیکانو د ا معاهده د نتائجو په لحاظ اطمینان بخش ثابته نهٔ شوه ځکه چه نهٔ خو سیکانو د خپل فوځ سر دوباره تنظیم اوکړو ۔ او نهٔ په دربار کښے د سیک سردارانو د سازشونو، پروجنو او ډله بازو خاتمه اوشوه ۔ دغه وجه وه چه د انګریزی فوځ دقیام د پاره کومه عرصه مقرر شوی وه ۔ په هغې کښے مطلوبه نتائج حاصل نهٔ شول ۔ کشمیرلا هغه شان ګلاب سنګه ته نهٔ وو حواله شوے ۔ او د کشمیر په نهٔ ورکولو کښے لال سنګه وزیر سخت مدعی وو ۔ دا سړے د ګلاب سنګه سخت مخالف وو ۔ لیکن لال سنګه د وزارت نه مات کړے شو ۔ او د سیک دربار په خواهش د انګریزی فوځ د قیام په موده کښے توسیع اوکړے شوه ۔ په دے لړکښے یو بله معاهده اوشوه ۔

د دے معاهدے له مخه د دلیپ سنګه د ریاست انتظام د سردارانو یو کونسل ته حواله شو ۔ او انګریزی ریذیډنټ مسټر لارنس د دے کونسل صدر مقرر شو ۔ رانۍ جنداں په انتظامی معاملاتو کښے د مداخلت کولو نه محرومه کړے شوه ۔ د دے نه پس هنری لارنس د خپلو ورونو "جان" او "جارج لارنس" په مدد د قابلو ځلمو سول افسرانو یو داسے ټولے تیار کړو چه هغوی په ډیر محنت سره په ریاست کښے امن قائم کړو او د خپل ښهٔ انتظام له کبله ئے د خلقو په زړونو کښے ځان ته لوئے عزت او مینه پیدا کړه ۔ هنری لارنس چه د سول افسرانو د کومے سلسلے بنیاد په پنجاب کښے ایښے وو هغے د پنجاب په تاریخ ډیر ژور اثر غورځولے دے ۔ د رسم ستی، د ماشومانو د وژلو، د مجرمانو نه د لاسونو ښپو پریکولو، قبیح او ناوړه رسمونه او سزاګانے د دوئ په کوششونو بندے کړے شوے ۔ د سړکونو د مرمت په لورے توجه اوکړه ۔ او د شاهراه اعظم هغه حصه چه په پنجاب کښے واقع وه ۔ په ډیر لوئے رقم ئے د هغ مرمت اوکړو ۔ د دے ځلمو سول افسرانو په سلسله کښے چه کوم افران په سابق صوبه سرحد کښے مقرر شوی وو په هغوی کښے جان نکلسن او هربرټ ایډورډ په ډیره جات او بنوں کښے، جارج لارنس او رینل ټیلر په پیښو ر کښے، میجر ایبټ په هزاره کښے او مسټر هربرټ په اټک کښے مقرر وو ۔ او دا ټول داسے افسران وو چه د خپل شخصیت او قابلیت ژور اثرات ئے په دے علاقه پرے ښودلی وو ۔

په کال ۱۸۴۸ء کښے د لارډ هارډنګ په ځائے لارډ ډلهوزی د هندوستان ګورنر جرنل مقرر شو ۔ لارډ هارډنګ د یوے محدودے علاقے او محدود فوځ سره د سیکانو د مستقل ریاست په حق کښے وو ۔ د هغهٔ دا منشا وه چه د مضبوط او منضبط فوځ په حالت

کښې به د انګریزانو او سیکانو ترمینځه د تصادم موقع نهٔ پیدا کیږی۔ ولے د هغهٔ دا خیال واقعاتو غلط ثابت کړو۔ په دے کښې هیڅ شک نشته چه د ‹‹ ریجنسی کونسل ›› صدر هنری لارنس د سیک ریاست انتظام په ډیر قابلیت، جان فشانئ او دیانتدارئ کولو۔ ولے د دهٔ په مشرئ سیک سرداران ځکه خفه وو چه د رنجیت سنګه په وخت کښې دوئ خپل ځانو نه حاکمان ګڼل۔ ولے اولس ورته خپل ځانونه په خپل حکومت کښې محکومان ښکاره کیدل۔ د هنری لارنس انتظامی پابندئ دوئ په خپلو اختیاراتو کښې بندیز ګڼلو۔ د غه وجه وه چه دوئ د پردو په لاس د یو قابل تعریف انتظام او دیانتدار حکومت په نسبت د خپلو په لاس یو نا اهل حکومت او د افراتفرئ انتظام ته ترجیح ورکوله۔ او په د ماغو کښې به ئے د سازشونو منصوبے پاللے۔ اخر د دے باغیانه منصوبو اغاز په کال ۱۸۴۸ء کښې د ملتان د یو واقع نه اوشو۔ د ملتان حاکم دیوان مولراج څه ډیرے بے قاعدګئ کړے وے۔ د هغې په بنا هنری لارنس د هغهٔ د معزولئ احکامات جاری کړل۔ او د انګریزی افسرانو په ماتحتئ کښې په هغهٔ پسے د سیک فوځ یوه دسته اولیږله۔ په دے موقع دیوان مولراج بغاوت اوکړو۔ په جنګ کښې دوه انګریزی افسران اووژلے شول۔ اوکوم سیک فوځ چه په دیوان مولراج پسے لیږلے شوے وو هغه هم د باغیانو ملګرے شو۔ او د ‹‹ سیکستان ›› د ازادئ جنډه ئے پورته کړه۔ د دے بغاوت په لور سمدستی توجه او نهٔ شوه۔ او ډیر زر دا بغاوت په ټول سیک فوځ کښې خور شو۔ او د انګریزانو برخلاف ئے اعلان جنګ اوکړو۔ د انګریزانو د پاره هم بے د جنګ نه بله لار پاتے نهٔ شوه۔ په دے ډول د انګریزانو او سیکانو ترمینځ دویم جنګ شروع شو۔

د دواړو طاقتونو ترمینځه اوله مقابله د ‹‹ چلیانواله ›› په مقام اوشوه۔ په دے موقع سیکان په ډیرے زړورتیا او بے دردئ اوجنګیدل۔ او اګرچه په دے مورچه خو فتح انګریزانو اوکړه۔ ولے په فائده کښې سیکان وو۔ ‹‹ ډلهوزی ›› د دے جنګ په باب کښې دا اولیکل: موږ یوه لویه فتحه حاصله کړه، ولے که داسے یوه بله فتحه هم موږ اوکړه نو زموږ خاتمه یقینی ده۔ د دے نقصان الزام په انګریزی سالار ‹‹ لارډ ګف ›› عائد کړے شو۔ او د هغهٔ په ځائے ‹‹ سرچارلس نیپئر ›› اولیږلے شو۔ ولے د هغهٔ د رارسیدو نه اول جنګ ختم شوے وو۔ د دے نه پس لارډ ګف د ګجرات په مقام په سیک فوځ مکمله فتح حاصله کړه۔ په جنګ کښې سیکانو ته حد په صورته نقصان اورسیدلو۔ سیک سپاهیان د ګجرات په جنګ کښې په ډیرے پریشانئ او وارخطائ کښې اوتښتیدل۔ او د دے نه پس په دوئ کښې د مقابلے طاقت

ختم شو۔

لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی ۔ په پیښور باندے د سیکانو قبضے د دوست محمد خان په زړهٔ کښے یو داسے پرهر جوړ کړے وو چه تل به تازه وو ۔ دغه وخت چه سیکان او انګریزان په خپل مینځ کښے اونښتل ۔ د کابل په تخت د دغه د دوباره تخت نشینئ نه پس پنځه کاله تیر شوی وو ۔ د پیښور د قبضے د پاره دوست محمد خان دا موقع موزونه اوګڼله ۔ سمدستی د خپل فوځ سره پیښور ته راغے ۔ په ښارئ قبضه اوکړه ۔ خپل نمسے ئے دلے ګورنر کړو ۔ او په خپله د فوځ سره په ښکته لاړ ۔ خیرآباد ئے هم اونیوهٔ ۔ او د اباسیند له غاړے د سیکانو د راتلو لاره بنده کړه ۔ لیکن سیکان د انګریزانو نه دومره ستومانه شوی وو چه د انګریزانو په مقابله کښے ئے د خپل زور دښمن دوست محمد خان سره رغه اوکړه ۔ په دے موقع د سکھ جرنیل چتر سنګھ او دوست محمد خان تر مینځه د دوستئ لوظ اوشو ۔ سیکانو د پیښور د علاقے نه د دست برداریٔ اقرار اوکړو ۔ او د دے په بدل کښے دوست محمد خان د خپل ځوی په ماتحتئ کښے خپله یو مضبوط رساله چه په دوؤ زرو سورو مشتمله وه د سیکانو امداد ته اولیږله ۔ او په خپله د جنګ د نتیج په انتظار کښے په پیښور کښے مقیم شو ۔ ولے چه د ګجرات په مقام سیکانو تیښته اوکړه ۔ نو د دوست محمد خان رساله هم په شا شوه ۔ انګریزی رسالے د " سرجان ګلبرټ " په ماتحتئ کښے د دوئ تعاقب جاری اوساتلو ۔ او ترهغه ورپسے راروان وو ۔ چه دوئ ئے د خیبر په دره وردننه کړل ۔ جان ګلبرټ تر " بګیاړی " پورے په دوئ پسے لاړ ۔ د پیښور په وادئ کښے د بارک زو دا وروستے فوځ وو چه اولیدلے شو ۔ جان ګلبرټ د انګریزی رسالے کماندار په ۲۱ مارچ ۱۸۴۹ء د دوست محمد خان د رسالے په تعاقب کښے پیښور ته رارسیدلے وو ۔ د دے نه لس ورځے پس د دغه وخت ګورنر جنرل لارډ ډلهوزی په برطانوی هند کښے د سیک ریاست د الحاق اعلان اوکړو ۔ دغه شان د انګریزانو حکومت د اباسیند نه په قبله تر پیښور راخور شو ۔ سیک راجه دلیپ سنګھ معزول او یو معقول پنشن ورکړے شو ۔ او انګلستان ته اولیږلے شو ۔ دغه شان د سیکانو لنډ کنډ اقتدار په قطعی ډول ختم شو ۔ په دغه ورځ یواځے په وادئ پیښور د سیکانو حکومت ختم نهٔ شو بلکه د دے علاقے نه د درانیانو زړهٔ هم په مستقل ډول صبر شو ۔ اګر چه تر څه وخته د دوست محمد خان د زړهٔ نه د پیښور د قبضے ارمان نهٔ وتلو ۔ او د دغهٔ زړهٔ انګریزانو ته خیرن وو لیکن وروستو داسے واقعات اوشول چه دوست محمد خان ئے د حالاتو سره په موافقت کولو مجبور کړو ۔

او هغهٔ د پلینبور نه ذرهٔ صبر کړو۔

د سیکانو په ریاست کښې د سابق صوبه سرحد علاقه د ۱۸۳۴ء نه تر ۱۸۴۹ء پورې قریبًا پنځلس کاله شامله وه۔ په دې دوران کښې په دې علاقه د سیکانو وړومبې ګورنر نونهال سنګه وو۔ چه د مهاراجه رنجیت سنګه ځوئ وو۔ بیا دهٔ پسې هری سنګه نلوه ګورنر شو۔ اوچه دې د محمد اکبر خان سره په یو جنګ کښې اووژلې شو نو بیا تیج سنګه ګورنر شو۔ په تیج سنګه پسې د رنجیت سنګه یو اطالوی جرنیل او یتهیاټل ګورنر اوټاکیدو۔ چه د خپلو ظلمونو له کبله د هری سنګه نه هم زیات مشهور وو۔ په ۱۸۴۵ء کښې د دې علاقې ګورنر شیر سنګه وو۔ او بیا د ۱۸۴۶ء نه تر ۱۸۴۸ء پورې ګلاب سنګه او جارج لارنس د دې علاقې په حکومت تاکلی شوی وو۔

په دې پنځلس کاله کښې په دې صوبه د سیکانو حکومت خالص د تورې په زور قائم وو۔ د دوئ دا حکومت د اولس په باب کښې د خدائے یو قهر وو۔ د سیک حاکمانو په نظر کښې نهٔ د انصاف څه قدر وو۔ او نهٔ د دوئ په حکومت کښې څه قانون او نظام وو۔ د دوئ د حکومت ټول کارونه به د فوځ په طاقت اجرا کیدل۔ او څه رنګ چه سباغلې سر لیپل ګریفن وائی د سیکانو د پاره د صوبه سرحد د پښتنو قابو کول د هغوی د وس نه بهر خبره وه۔ دغه وجه وه چه هغوی به تل د اخلاقی شکست مظاهره کوله۔ او خپل انتقامی جذبات به ئے په قتلونو، خونریزئ، لوټ مار او اورونو لګولو سړول۔ دوئ به خپله مالیه د فوځ په زور وصولوله۔ او د هغ به هم نهٔ څه شرح وه او نهٔ څه اندازه۔ بلکه سیک فوځ به په یو کلی حمله اوکړه۔ او د قحطئ د ملخانو په شان به په کورونو ورننوتل۔ او هر څه به ئے جاروکړل۔ ان چه د کورونو نه به ئے د دروازو تښې او دورشلې هم اوزغلولې۔ د دوئ په راتلو به ښځې او وارهٔ زارهٔ د کلیو نه اوتښتیدل۔ او ځوانانو به دوئ سره مقابله شروع کړه۔ او کوم وخت چه به د علاقې د لوټلو نه پس دوئ بیرته لاړل نو ټوله علاقه به داسې ورانه ویجاړه پاتې شوی وه لکه چه یو سخته زلزله پرې راغلې وی۔ څه خلق په کښې مړهٔ شوی او ځنې ورنه په هجرت مجبور شوی وی۔ کورونه، مکانونه، جماتونه به د دوئ د لاسه نړیدلی وو۔ او فصلونه به د دوئ د لاسه تباه شوی وو۔ په حقیقت کښې نهٔ خو سیکان د حکومت په چل پوهیدل۔ او نهٔ د دوئ حکومت ته حکومت ویل موزون دی۔ د خپلو ظلمونو او ناوړه کارونو له کبله د پښتنو په تاریخ کښې د سیکانو دا لنډ کتي دور د "سیکوړه" په لفظ مشهور دے۔

لکه چه تیرو پاڼو کښې وئیلے شوی دی د بارکزو ورونو دکورنۍ مخالفت په دوران کښې سردار سلطان محمد خان د سیکانو د یو خراجګذار حاکم په ډول په پېښور کښې استوګن وو. او وروستو چه سیکانو په دے علاقه مستقله قبضه حاصله کړه نو د هغ نه پس به د یو جاګیر دار په حیثیت ولے اوسیدلو. او خپل سکه ورونه سید محمد خان او پیر محمد خان به هم ورسره وو. لیکن چه انګریزانو د شاه شجاع په حمایت کښې په افغانستان په وړمبي ځل لام اوتړلو. او په دے لام کښې سیکان هم د انګریزانو ملګری وو. نو دغه وخت سردار سلطان محمد خان د یو سیاسي نظر بند په ډول لاهور ته اولیږلے شو. د سیکانو او انګریزانو د وړومبۍ جنګ په نتیجه کښې چه په سیک دربار کښې هنری لارنس د ریزیډنټ په حیثیت مقرر شو نو د هغهٔ په سفارش سردار سلطان محمد خان هم ازاد شو. او په پېښور کښې ورله د استوګنې اجازت ورکړے شو. دغه شان سردار سلطان محمد خان قریبًا داوو کالو د نظر بندۍ نه پس پېښور ته راغ. او په پېښور کښې ئے په "وزیر باغ" کښې استوګنه اختیار کړه.

په دے وخت کښې د سیکانو دلوری نه د پېښور په ګورنرۍ سردار ګلاب سنګه ټاکلے شوے وو. او د سیکانو فوځونه د شیر سنګه اټاری والا په کمان کښې وو. او جارج لارنس چه د هنری لارنس ورور وو د انګریزی ریزیډنټ د نائب په حیثیت د سیک حکومت د فوځ او سول معاملاتو د نګرانۍ د پاره مقرر وو. سردار سلطان محمد خان به د خپل خلاصۍ د پاره خپل ځان د انګریزی ریزیډنټ هنری لارنس زیر احسان ګڼلو. او د شکریے په ډول به ئے د دے اظهار د جارج لارنس په مخکښې هم کولو او دا به ئے وئیل چه که چرے ما ته موقع په لاس راغله نو عملاً به د دے احسان او نیکۍ بدل کوزوم. او دا موقع هغهٔ ته ډیر زر په لاس ورغله.

په ۱۸۴۸ء کښې چه سیک فوځ بغاوت اوکړو. نو د پېښور فوځ هم باغي شو. دغه ورځ د انګریزی اهلکارانو او حاکمانو د پاره ډیرے خطرناکے او د تنګسیا وے. په دے موقع جارج لارنس د هغه احسان په بدل کښې کوم چه د دے سردار سره د هنری لارنس د لوری نه بغیر د څه طمع او غرض نه شوے وو. او د هغ د منلو دهٔ په خپله هم خوشحاله اقرار کړے وو. دا خواست اوکړو چه د هغهٔ (جارج لارنس) د آل وعیال په حفاظت سره هندوستان ته د رسولو په باب کښې د سیکانو سره په خپل شخصي ضمانت او اعتماد خبرے اترے اوکړي. سردار سلطان محمد خان د دے خدمت ته په ډیرے خو شحالۍ تیار شو. ولے په ځائے د دے چه د جارج لارنس د ال و عیال د حفاظت ضمانت ئے د سیکانو نه اخستے وے جارج لارنس

ځ سره د ال و عیال د سیکانو په لاس کښې بند یوان کړو - او د دے په بدل کښې ځ د سیکانو د فتح په صورت کښې د خپل ځان د پاره د پېښور د حکومت وعده د هغوی نه واخستله -

که چرے سردار سلطان محمد خان دا فعل د قامي مفادو په خاطر کړے وے لکه څه رنګ چه مبالغې «کیرو» وائي نو بیا خو ورته ناجائز نهٔ شو وئیلې ځکه چه د مشهورے مقولې مطابق چه «په جنګ او مینه کښې هرڅه جائز وی» ولې دا ظاهره ده چه د هغهٔ دا فعل په ذاتي مفادو مبني وو - په دے موقع د هغهٔ دا خیال پیدا شو چه د جنګ په دے لوبه کښې به سیکان بریالي شي نو هغهٔ خپله فائده په دے کښې اوکنله چه هغه هم په دے لوبه کښې د ګټندوی سره شامل شي - دا یقیني خبره ده چه د سیکانو ملګرتیا څه جرم نهٔ وو - ولې په دے شرط چه د هغې بنا په قامي مفادو وے - دوست محمد خان چه سیکان او انګریزان دواړه ځ خپل دشمنان ګڼل - او په خپله خپله موقع ځ د دواړو قامونو سره دشمني پاللې وه - د قامي مفادو په خاطر په دے جنګ کښې د سیکانو په مرسته د انګریزانو سره جنګیدلے وو - ولې د دوست محمد خان او سلطان محمد خان په مقاصدو کښې څرګند فرق وو - د دوست محمد خان پیش نظر د قام وسیع مفاد وو - هغه د خونړی سیکانو د ظالمانه پنجې نه د پښتنو زمکه ازادوله - او د دے مقصد په حصول کښې ځ د هرے ذریعې نه کار اخستلو - ولې د سلطان محمد خان پیش نظر خپل مفاد وو - او په دے لړ کښې هغه هر هغې خبرے ته تیار وو په کوم چه هغهٔ د پېښور قبضه حاصلولے شوه - او یا ځ د کابل د تخت نه دوست محمد خان کوزولے شو - د سردار سلطان محمد خان دا فعل د اسلامي رواداری او پښتونولۍ د روش نه هم سراسر خلاف وو - د دغه وجه وه چه کوم وخت دوست محمد خان د دے نه خبر شو نو هغهٔ هم په دے خبره ډیر ناراض شو او د پیغور په شکل کښې ځ ورله اووے :-

«تا نهٔ دی اوریدلی چه خوګیانو یو ځل تش په دے خبره په لوئ احمد شاه بیے تورے راواښکلې وے چه د هغوی په خیمه کښې د بادشاه د ښکاری سپیو نه یو زخمي میلو پناه اخستې وه - او شاهي ملازمانو د هغوی نه د دے زخمي میلو د واپس اخستلو مطالبه کوله» د دوست محمد خان د خبرے دا مطلب وو - چه د خوګیانو غیرت خو دا خبره برداشت نهٔ کړے شوه چه هغوی یوړ وبل پناه ګزین میلو د خپل حمایت نه محروم کړی - نو ستا غیرت دا خبره څه رنګ برداشت کړه چه جارج لارنس چه په تا ځ اعتماد کړے وو - او ستا خواځ ناستو وه - د خپل غرض د پاره دِ په سیکانو خرڅ کړو - د جارج لارنس سره د دے بد عهدۍ نتیجه دا شوه چه هرکله سیکانو تیښته اوکړه - او په پېښور باندے د انګریزانو قبضه راغله - نو هم دغه

جارج لارنس د پېښور ډپټي کمشنر اوټاکيد۔ دغه وجه وه چه د سردار سلطان محمدخان د پاره د پېښور استوګنه ګرانه شوه۔ او هغهٔ د بې ورځ په کابل کښې استوګنه اختيار کړه۔

د انګريزانو او سکانو دا دويم جنګ د خپلو نتائجو له مخه د پښتنو په تاريخ کښې ډېر اهميت لري. دے جنګ که يو طرف ته په وادئ پېښور کښې د سکانو د وحشت او بربريت لنړ ګنړ دور ختم شونو په بل لورے په دے علاقه د درانيانو د غير مستقل او غير يقيني اقتدار خاتمه هم اوکړه۔ او په قطعي ډول دا علاقه د درانيانو د لاس نه اووتله۔ دے جنګ انګريزان د بنګال نه تر خيبر پورے د ټول ملک مالکان کړل۔ او د سلطنت پوله ئې براه راست د افغانستان سره ولګيده۔ او د وادي پېښور او ازادو قبائيلو تاريخ په يو نوي دور کښې داخل شو۔

د مورخينو په خيال کښې د افغانستان د وړومبي جنګ په اسبابو کښې يو اهم سبب په مينځنۍ ايشيا کښې د روس د پېش قدمۍ پاليسي او په انګريزانو باندے د هغې رد عمل ګڼلے شي۔ دا خبره تر څه حده درسته ده۔ ولے د دے نه هم انکار نهٔ شي کيدے چه د دے جنګ په پس منظر کښې د پېښور او د دے صوبے د قبضے اهميت او خواهش هم د متحاربينو په زړونو باندے ژور اثر لرلو۔ که يو طرف ته درانيان د دے خطے قبضے ته ليواله وو۔ نو په بل لور سکان هم ورته تږي ناست وو۔ او د انګريزانو نه هم د دے اهميت پټ نهٔ وو۔ بلکه په انګريزانو باندے د افغانستان وړومبي جنګ د دے علاقے اهميت او ضرورت نور هم واضح کړو۔ پس که چرے د انګريزانو او سکانو ترمينځه د وړومبي جنګ هدف وګے د دے صوبے قبضه اوګڼلے شي۔ نو بے ځايه به نهٔ وي۔ د دوئ ترمينځه دا وړومبے جنګ د دويم جنګ پيش خيمه وه۔ او په دے بنا د دے وړومبي جنګ د دوست محمد خان د پاره هم داسے اسباب پيدا کړل چه هغه د سکانو او انګريزانو د دويم جنګ په موقع د دے صوبے د قبضے په حقله يو ځل بيا قسمت ازمائي اوکړه۔ ولے کامياب نهٔ شو۔ د دے جنګ په نتيجه کښې چه د سکانو رياست سقوط اومونډ نو د پېښور صوبه هم د سکانو د جانشين حکومت په ډول د انګريزانو په قبضه کښې راغله۔ او د دوئ حکومت په دے صوبه قريباً سل کاله دوام اومونډ چه تفصيلي حالات به ئے په خپله موقع بيان شي۔

په برطانوي هند کښې د سيک رياست د الحاق په وجه د افغانستان او برطانوي هند براه راست تعلق پيدا شو۔ افغانستان يو داسے ملک دے چه د تاريخ په مختلفو دورونو کښې هم د دے لورنه په هند حملے شوي وے۔ او کيدے به۔ دغه وجه وه چه د افغانستان په حقله به حکومت هند په خپلے خارجه پاليسۍ کښې د هند د حفاظت اهميت هميشه پيش

نظر ساتلو۔ د دے نه علاوه د افغانستان او برطانوی مقبوضه سرحدی صوبے تر مینځه اباد بے شماره ازاد قبائیل هم د انګریزی سیاست دانانو په نظر کښے وو۔ د دے سیاست دانانو په خیال کښے په سرحد باندے امن د ټول هندوستان د امن و حفاظت ضامن کیدے شو۔ په دے بنا دوئ د هغو درو د قبضے په تکل شو کومے چه د افغانستان له خوا د هند په لور راوتلے وے۔ او په تیرو زمانو کښے کم و بیش هر حمله آور هم د دغ درو په لار په هندوستان حمله کړے وے۔ په دے سلسله کښے برطانوی حکومت د افغانستان د شاهی کورنئ په مقابله دا پالیسی اختیار کړی وه چه د دے بادشاهانو ازادی دِ تر هغه وخته قائمه وی تر څوچه د دوئ تعلقات د حکومت هند سره دوستانه او خوشګواره وی او د یو داسے رقیب طاقت د اثر و نفوذ نه چه هغه هندوستان ته په بد نظر ګوری او په حکومت هند باندے هر وخت د حملو ویره تیروی بیخی ازاد وی۔ د دے مقصد د حصول په لړ کښے د افغانستان په مقابله د برطانوی حکومت پالیسئ په مختلفو وختونو کښے مختلف شکلونه اختیار کړی وی۔ ولے د هر دور په پالیسئ کښے هم دغه یو بنیادی اصول مد نظر وو۔ چه افغانستان دِ دَ بل هر بیرونی طاقت د اثر و نفوذ نه قطعًا ازاد وی۔ او د دے په نتیجه کښے دِ دَ برطانوی هند په شمال مغربی سرحد باندے قلاره قلاری وی۔ او په ازادو پښتنو قبائیلو کښے دِ په انګریزی مقبوضه علاقو باندے د حملے کولو لمسون او پارول ختم وی۔ یا داسے به اووایو چه د انګریزانو د پالیسئ مقصد دا وو چه د برطانوی هند په پوله دِ د افغانستان حکومت د یو بفر سټیټ حیثیت اختیار کړی۔

د دے پالیسئ وړومبے دورهغه وو چه په دے سلسله کښے په کال ۱۸۰۹ء کښے د انربیل مسټر سټوارټ ایلفنسټن په مشری کښے د انګریزانو له خوا یوه جرګه د شاه شجاع سره د دوستانه تعلقاتو او معاهدے په غرض پېښور ته راغلی وه۔ او هم په دغه سلسله کښے د لیګزینډر برنس په کال ۱۸۳۳ء او کال ۱۸۳٦-۳۷ء کښے د امیر دوست محمد خان سره د معاهدے په غرض کابل ته تلے وو۔ ولے په کال ۱۸۳۹ء کښے انګریزان په دے خپله پالیسئ قائم پاتے نه شو او د افغانستان په کورنو معاملاتو کښے د خل ورکولو ته اماده شول۔ او په دے لړ کښے ئے د افغانستان په تخت باندے د عوامو محبوب امیر دوست محمد خان په ځائے د پناه ګزین شاه شجاع د تخت نشین کولو فیصله اوکړه۔ او د دے په نتیجه کښے د افغانستان وړومبے جنګ اوشو۔ په برطانوی هند کښے د سیک ریاست الحاق په دے پالیسئ کښے بیا تبدیلی پیدا کړه۔

لکه چه موځوځله وړاندے وئیلی دی امیر دوست محمد خان د پېښور قبضے ته د یر

لیواله وو- ولے هرکله چه دا علاقه دانګریزانو په قبضه کښې راغله نو د ناچارۍ نه هغهٔ ددے نه زړهٔ صبر کړو- او په افغانستان کښې ئے د خپل حکومت استقلال او خوروِن ته مخه اوکړه- په دے سلسله کښې هغهٔ په کال سنه ۱۸۵۰ء د جیحون سیند په سویلی علاقه حمله اوکړه- او دنن زمانے افغانی ترکستان او بلخ ئے فتح کړل- ولے د قندهار او هرات صوبے لا تر دغه وخته د دهٔ د حکومت نه بهر وے- څه رنګ چه دوست محمد خان د پښور قبضے ته لیواله وو- دغه رنګ د ایرانی حکومت په زړهٔ کښې د هرات د قبضے ولوله نهٔ سړیدله-

- په دغه ورځو کښې هم په هرات کښې د ایران سازشونه شروع وو- قندهار هم د ایرانیانو د سازشونو نه خالی نهٔ وو- دا خبرے به په امیر دوست محمد خان ډیرے بدے لګیدے- په بل لور د برطانوی حکومت سره هم دا ویره وه چه که چرے په هرات د ایران قبضه اوشی- نو د هند د حفاظت یو مضبوطه مورچه به د دشمن په لاس ورشی- د دے سیاسی ضرورتونو ،زاړهٔ دشمنان یوځل بیا سره په خپلو کښې نزدو کړل- او د امیر دوست محمد خان او انګریزانو ترمینځه د پښور په مقام په کال سنه ۱۸۵۵ء کښې یو دوستانه معاهده اوشوه- د دے معاهدے د پاره امیر دوست محمد خان خپل ځوئے غلام حیدر خان رالیږلے وو- او د انګریزانو د لورې نه د پنجاب وړومبئ چیف کمشنر "جان لارنس" مقرر شوے وو- دا معاهده ډیره مختصره او په درے شرائطو مشتمله وه- د معاهدے اول شرط دا وو چه د امیر کابل ، د هغهٔ د وارثانو او د ایسټ انډیا کمپنۍ ترمینځه به همیشه دوستانه تعلقات قائم وی- (۲) دا چه کمپنی به همیشه د افغانستان د ازادۍ احترام کوی- او په هغې کښې به څه مداخلت نهٔ کوی- (۳) امیر کابل به هم د کمپنۍ په باب کښې دغه رویه اختیاروی- او امیر کابل به د کمپنۍ د دوستانو دوست او د هغې د دښمنانو دښمن به وی- د دے معاهدے نه پس د امیر دوست محمد خان د زړهٔ نه انګریزانو ته خیرے اووت- او د دواړو حکومتونو ترمینځه دوستانه تعلقات قائم شول-

د هرات په باب کښې د حکومت ایران سازشونه جاری وو- اخر ایرانی فوځونو په هرات حمله اوکړه- او په کال سنه ۱۸۵۶ء کښې په هرات باندے د ایرانی حکومت قبضه راغله- په هرات باندے دا قبضه د انګریزانو د خپلو مفادو هم برخلاف وه- او د دوست محمد خان خوشحالول ئے هم مد نظر وو- په دے سلسله کښې د انګریزانو او امیر دوست محمد خان په مینځ یو بله معاهده اوشوه- دا معاهده هم په پښور کښې اوشوه- د دے معاهدے د یارلس شرطونه دی- د معاهدے د اول شرط مطابق برطانوی حکومت د امیر کابل د پاره لس زره پونډه ماهوار

وظیفه مقرر کړه. او د ایرانی حکومت د دباؤ او مداخلت په صورت کښې د امیر کابل د حفاظت او امداد اقرار اوکړو. د معاهدې د څلورم شرط له مخې د کابل امیر دا خبره ومنله چه یو انګریز افسر سره د ډیرو هندوستانی نوکرانو کابل، قندهار، بلخ یا چرته چه د پښتنو فوځ د ایرانیانو جنګ ته ځی لیږلے شی. د دې افسر ذمه واری به هغه امداد نګرانی کول وی کوم چه به امیر ته ورکولے شی. دا افسر به د هغه فوځی خرڅونو نګرانی هم کوی د کومو د پاره چه انګریزی حکومت امداد منظور کړے وی. او انګریزی حکومت به د ټولو حالاتو نه خبردار ساتی. د دې افسر به د فوځ د تنخواه سره یا د کابل د حکومت د انتظامی معاملاتو سره هیڅ تعلق نۀ وی. او ترکومه چه دا افسر او د هغۀ اهلکاران په افغانستان کښې موجود وی امیر کابل به د هغوی د حفاظت او ښۀ روزګار ذمه وار وی. او د جنګ په باب کښې به ئې د ټولو معاملاتو نه خبردار ساتی. د معاهدې د پنځم شرط مطابق امیر کابل په پیښور کښې د خپل وکیل مقرر کولو مجاز وو. د غه شان د شپږم او اووم شرط مطابق دا ایر امدادی وظیفه به هغه وخت بندیدلے شوه کله چه د امیر او انګریزانو ترمینځه جنګ شروع شوے وے. یا انګریزی حکومت هسې د دې ورکول موزون نۀ ګڼلے. او کوم وخت چه دا وظیفه بنده شوے وے نو انګریزی افسر به د کابل نه واپس راغوښتلے کیدو مګر د هغۀ په ځائے د یو دیسی افسر موجودګی په کابل کښې ضروری وه.

د دې نه پس انګریزانو په ایران باندې د حملې په غرض خپل فوځونه په خلیج فارس کښې وردننه کړل. او ایرانیانو ته ئې په خپله علاقه کښې شکست ورکړه. د دې شکست په نتیجه کښې ایرانیانو د انګریزانو مطالبې ته غاړه کیښوده. په ۴ مارچ ۱۸۵۷ء د ایرانیانو او انګریزانو ترمینځ یو معاهده اوشوه. چه د هغې په موجب ایرانی حکومت د هرات د قبضې نه دست برداری اختیار کړه. او د افغانستان په معاملاتو کښې ئې د دخل نۀ ورکولو اقرار اوکړو چه د هرات نه د ایران قبضه لرے شوه نو دا صوبه د امیر دوست محمد خان ورارۀ احمد خان ته ورکړے شوه. چه هسې په نوم خود مختاره وو. ولے د شکستونو باوجود ایران د هرات نه زړۀ نۀ صبرولو. او په سازشونو کښې لګیا وو. د امیر ورارۀ هم د ایران بالادستۍ منلو ته امادۀ معلومیدۀ. په امیر دوست محمد خان دا خبره ډیره بده اولګیده. نو هغۀ په هرات حمله او بیا قبضه اوکړه. ولے د هرات د فتح په نهمه ورځ (۹ جون ۱۸۶۳ء) امیر دوست محمد خان وفات شو. او هم په د غه ښار کښې دفن شو.

د ټولو مؤرخینو په دې خبره اتفاق دے چه د سردار فتح خان په ټولو ورونو کښې د هغه زمانې د حالاتو او واقعاتو مطابق د دوست محمد خان نه زیات زړور، عادل،

او د پوځ خاوند بل یو هم نهٔ وو۔ هغهٔ په ډیرو جنګونو کښې د یو قابل جرنیل او سیاست
دان په ډول خپل ځان څرګند کړے وو۔ په خوی بوی کښې خوش اخلاقه، په خبرو اترو
کښې مهذب، د مشرانو عزت کوونکے او په کشرانو مینه ناک وو۔ او د دے صفاتو له کبله
هغه د ټول قام خوښ وو۔ کامیابۍ د هغهٔ د طبیعت په توازن کښې څه فرق نهٔ وو راوستلے.
او نهٔ د حکومت اقتدار هغه سنګدل کړے وو۔ د غریب نه غریب سړی به خپل ځان هغهٔ
ته رسولے شو۔ او خپل فریاد به ئے هغهٔ ته اورولے شو۔ هغهٔ به د هرچا فریاد اوریدلو
ته تیار وو۔ د هغهٔ په ماتحتۍ کښې به فوځ په ډیرے جانثارۍ جنګیدلو۔ د خپلو ذاتی اخلاقو
په وجه هغه د ټول قام خوښ وو۔ او ځکه ورسره د خپلو ورونو بغض او کینه وه۔ او د
هغهٔ د ترقۍ په لاره کښې به ئے هغهٔ ته خنډونه پیدا کول۔ سره د دے هغه په دے
کوشش کښې لګیا وو چه د سردار پائنده خان د ځامنو ترمینځه کورنۍ مخالفت لرے شی۔ ولے
د هغهٔ د ورونو زړونه هغهٔ ته نهٔ سپینیدل۔ او هغوی د دوست محمد خان د اقتدار
په نسبت د سیکانو اقتدار منلو ته تیار وو۔ ولے باوجود د خپلو ورونو د بغضونو او
رقابتونو هغه د ټول افغانستان مالک شو۔ هغهٔ به دا کوشش کولو چه د افغانستان
خلق دِ اسوده حال شی۔ او د پر امن ژوند تیرولو په رازدِ پوهه شی۔ هغهٔ د خپل ملک
زراعتی او تجارتی ترقۍ ته ډیر لیواله وو۔ د هغهٔ محکمه پولیس او محکمه انصاف د خلقو د پاره
یو رحمت وو۔ غرض په دے کښې هیڅ شک نشته چه د سردار فتح خان نه پس د افغانستان
د حکومت هغه قطعی مستحق وو۔

# امیر شیر علي خان

د امیر دوست محمد خان شل ځامن وو. د هغه دوه ډیر قابل ځامن محمد اکبر خان او غلام حیدر خان د هغه په ژوند کښې په کال ۱۸۴۷ء او کال ۱۸۵۸ء کښې وفات شوي وو. د امیر په پاتې ځامنو کښې محمد افضل خان او اعظم خان د یوې مور نه وو. او شیر علي خان، شریف خان او محمد امین خان د بلې نه. د امیر دوست محمد خان نه پس شیر علي خان د پلار د جانشین په ډول د افغانستان امیر شو. ولې محمد افضل خان او اعظم خان ددې امارت ته غاړه کېښنوه. او دغه شان افغانستان یو ځل بیا د تخت نشینۍ په کورنو جنګونو کښې ښخته شو. او د هغې په نتیجه کښې انګریزانو په دویم ځل په افغانستان لام اوتړلو.

د تخت نشینۍ نه پس امیر شیر علي خان د خپل امارت په حقله برطانوي حکومت ته خبر ورکړو. او د حکومت هند سره ئې د پلار د وخت د معاهدې د نوي کولو اراده ښکاره کړه. ولې د هغه زمانې ګورنر جنرل "لارډ ایلجن" د امیر شیر علي خان د دې دوستانه پیغام په باب کښې په دې وجه خاموشي اختیار کړه چې د شیر علي خان نور ورونه لکه افضل خان او اعظم خان وغیره د هغه نه برخلاف شوي وو. د برطانوي حکومت له خوا دا خاموشي امیر شیر علي خان په خپل مخالفت محمول کړه. د هغه په زړه کښې دا ویره پیدا شوه چې انګریزان د ده د تخت نشینۍ مخالف دي. په کال ۱۸۶۳ء کښې لارډ ایلجن مړ شو. او د هغه په ځای لارډ لارنس وائسرائ شو. امیر شیر علي خان د دې نوي وائسرائ سره بیا دوستانه تعلقات پیدا کړل. دغه وخت انګریزي حکومت هغه د افغانستان امیر تسلیم کړو. او د هغه ځوئ محمد علي خان ئې د هغه ولي عهد اومانه.

د امیر دوست محمد خان د وفات په وخت کښې محمد افضل خان د بلخ حاکم وو. او اعظم خان په کرمه او خوست حکومت کولو. شریف خان په فراه او ګرشک کښې او محمد

امین خان په قندهار کښې حکمران وو- په اپریل ۱۸۶۶ء کښې افضل خان او اعظم خان د امیر شیر علی خان نه بغاوت اوکړو- او امیر شیر علی خان د انګریزانو نه د مرستې خواست اوکړو- ولې په دے موقع انګریزانو غیرجانبداری اختیار کړه- او دا فیصله ئې اوکړه چه هرڅوک چه د خپلې تورې په زور د کابل تخت حاصل کړی هغه به د افغانستان امیر او منلې شی-

امیر شیر علی خان د افضل او اعظم دواړو سره مقابله اوکړه- او دواړو ته ئې شکستونه ورکړل- محمد اعظم خان هندوستان ته په تیښته لاړ- او د انګریزانو سره پناه‌ګزین شو- او افضل خان د شکست نه پس خپل ورور نه معافی او غوښتله- امیر شیر علی خان هغه معاف کړو- او په زور دستور ئې په بلخ او افغانی ترکستان حکمران پرېښودو- ولې لږه موده پس د دواړو ورونو ترمینځه څه غلط فهمئ پیدا شوے- او د هغې په نتیجه کښې محمد افضل خان بیا ګرفتار او په غزنی کښې قید کړے شو- د افضل خان په ګرفتارئ د هغه ځوئے عبدالرحمان بخارا ته اوتښتیده-

په کرمه کښې یو ځل بیا د اعظم خان په لمسون بغاوت اوشو- امیر شیر علی خان د دے مقابلې ته خپل وزیر محمد رفیق خان اولیږلو- ولې په دے پیسے سم په قندهار کښې محمد امین خان بغاوت اوکړو- چه د امیر شیر علی خان سکه ورور وو- محمد رفیق خان اوس د قندهار په مهم روان شو- د طرفینو مقابله د قلات غزنی سره نزدے د «کجباز» په مقام اوشوه- په جنګ کښې حنو د امیر شیر علی خان فوځو نه کامیاب شول- ولې د هغه مشر او ولی عهد ځوئے محمد علی خان د خپل تره محمد امین د لاسه په دے جنګ کښې اووژلے شو- د دے ځوی په مرګ امیر ته دومره صدمه اورسیدله چه د فتح تپوله خوشحالی ئې هیره شوه- او د غم نه لیونے شانته شو- حکومت ته ئې شا کړه- او په قندهار کښې کښېناست-

د محمد افضل خان ځوئے عبدالرحمان چه په بخارا کښې د امیر شیر علی خان د دے بے پروایئ نه خبر شو نو هغه د موقع نه فائده واخسته- د امیر بخارا نه ئې څه مدد حاصل کړو- په جیحون راپورے وتو- او د امیر شیر علی خان حاکمان ئې په رشوت په خپله ډله کښې شامل کړل- او ډیر زر ئې په تپوله علاقه قبضه اوکړه- په دغه ورځو کښې د امیر شیر علی خان وزیر محمد رفیق خان هم د امیر نه مخالف شوے او د انګریزانو علاقے ته تښتیدلے وو- او د اعظم خان ملګرتیا ئې اختیار کړی وه- چه دوئ د عبدالرحمان د کامیابئ نه خبر شول نو د هندوستان نه راروان شول- عبدالرحمان هم د کابل په نیت را روان شوے وو- اعظم

خان او عبدالرحمان دواړو په شریکه یو فوځ تیارکړو او په کابل ئے حمله اوکړه۔ د امیر شیرعلی خان ځوئے ابراهیم خان دلے حاکم وو۔ په مقابله کښے ابراهیم خان اوتښتیده۔ او قندهار ته لاړ۔ او عبدالرحمان د خپل تره اعظم خان په ملګرتیا کښے په کال ۱۸۶۵ء کښے په کابل ورننوت۔ څو ورځے پس ئے په جلال اباد هم قبضه اوکړه۔

امیرشیرعلی خان چه ددے واقعاتو نه خبر شو نو ټول لیونتوب ترینه اووت۔ سمدستی ئے فوځ تیارکړو۔ او د عبدالرحمان مقابلے ته روان شو۔ د «شیخ آباد» په مقام د دواړو فوځونو ترمینځ مقابله اوشوه۔ امیر شیرعلی خان ډیر په بهادرئ اوجنګیدلو۔ ولے په اخر کښے د هغه فوځونه باغیانو ته واوړیدل۔ اوله دے مجبورئ نه هغه قندهار ته اوتښتیده۔

د دے نه پس عبدالرحمان او اعظم خان په غزنی حمله اوکړه۔ بیا رئے فتح کړو۔ او محمد افضل خان ئے د قید نه آزاد کړو۔ او ټولو په رضا صلاح خپل امیر مقررکړو۔ او کابل ته راغلل په تخت کابل افضل خان کښیناست۔ او د انګریزانو نه ئے هم د خپل حکومت د تسلیمولو خواست اوکړو۔ ولے د هند ګورنر جنرل ورله اولیکل چه د حکومت هند ټول تعلقات د امیر افغانستان سره وی۔ که چرے ته په افغانستان کښے خپله بادشاهی مستقله کړے۔ او د زړه د خلاصه د انګریزانو دوستئ ته تیار شے نو زه به دِ په ډیرے خوشحالئ د دے لوئے مرتبے لائق اوګڼم۔ ولے په حاضروخت کښے د شیرعلی خان سره خپل لوظ نهٔ شم ماتولے۔ او تر اوسه پورے هغه د افغانستان د هغه ټوټے بادشاه منم چه کومے چه د هغهٔ حکومت قائم دے۔ او داخبره درته صفا صفا په ایماندارئ وایم۔

د دے نه څه لږه موده پس اعظم خان په قندهار حمله اوکړه۔ او قندهار هم د امیر شیرعلی خان د لاسه اووت۔ او هغه هرات ته لاړ۔ او د هغه ځائے نه ئے بیا په کال ۱۸۶۷ء په کابل حمله اوکړه۔ ولے د عبدالرحمان د لاسه ئے شکست اوموندهٔ۔ او بیرته هرات ته لاړ۔ د دے جنګ نه دوه هفتے پس محمد افضل خان په کابل کښے وفات شو۔ او د هغهٔ په ځائے اعظم خان تخت نشین شو۔ محمد افضل خان یو ښهٔ زړے او نیک حاکم وو۔ ولے په اعظم خان کښے هغه خوبئ نهٔ وے۔ کومے چه په محمد افضل خان کښے موجود دے وے۔

په دغه ورځو کښے انګریزان هم د شیرعلی خان د دوباره اقتدار موندلو نه مایوس شو۔ او اعظم خان ئے د کابل امیر اومنلو۔ ولے ډیر زر امیر شیرعلی خان د هرات نه په قندهار حمله اوکړه۔ او فتحه ئے حاصله کړه۔ بیا ئے په کابل حمله اوکړه۔ او دلے ئے هم فتحه اوموندله۔ اعظم خان بیا هندوستان ته اوتښتیدهٔ او د هند نه ایران ته لاړ۔ او هلته په

نیشاپور کښې وفات شو ـ عبد الرحمان سمرقند ته اوتښتیدو ـ په جنوری ۱۸۶۹ء کښې امیر شیرعلی خان د چا د شرکت نه بغیر بیا د ټول افغانستان مالک شو ـ

په کومو ورځو کښې چه امیر شیر علی خان په افغانستان کښې د مېلو ورونو سره په جنګونو کښې لګیا وو په هغه ورځو کښې حکومت روس مخه پوله د جیحون سیند شمال ته او د امیر شیر علی خان سلطنت ته رانزدې کړی وه ـ دې خبرې د انګریزانو سره هم ویره پیدا کړی وه ـ د غه وجه وه چه دوئ بیا د افغانستان معاملاتو ته توجه اوکړه ـ امیر شیر علی خان د روس د دې پیش قدمئ د خطراتو نه ښه خبر وو ـ او د انګریزانو سره د دوستانه معاهدې کولو ارزومند وو ـ اګرچه تیرو کالونو کښې د افغانستان په کورنئ مخالفت کښې انګریزانو د امیرشیرعلی خان سره غیر دوستانه رویه ساتلې وه ـ او د هغه سره ئې هیڅ امداد نه ووکړې ـ بلکه د هغه برخلاف د هغه د ورونو چند روزه حکومت ئې هم تسلیم کړې وو ـ لیکن د غه وخت د حالاتو نزاکت طرفینو محسوس کړې وو ـ او هرکله چه د لارډ میوګورنر جنرل هند د لوری نه امیرشیرعلی خان ته د ملاقات دعوت ورکړې شو نو هغه دا دعوت په ډیرې خوشحالئ منظور کړو ـ په کال ۱۸۶۹ء کښې د انبالې په مقام د امیر شیر علی خان او لارډ میوګورنر جنرل ملاقات اوشو ـ په دې ملاقات کښې اګرچه د امیر د خواهش مطابق د حکومت هند او امیر ترمینځه څه دوستانه معاهده خو اونه شو ـ بیا هم د دې ملاقات اثر په امیر شیر علی خان ډیر ښه اوشو ـ د امیر په امدادی رقم کښې اضافه اوشوه ـ او په کافی مقدار کښې ورله وسله هم ورکړې شوه ـ او د طرفینو د زړونو نه غلط فهمئ لرې شوې ـ

د افغانستان د ورومبی جنګ په پس منظر کښې په مینځنی ایشیا کښې د سلطنت روس د پیش قدمئ د پالیسئ خطرات یو اهم سبب ګڼلې شي ـ ولې حقیقت دا سې نه دې ـ په هغه وخت (۱۸۳۹ء) کښې د سلطنت روس پولې د افغانستان د سرحد نه ډیرې لرې وې ـ او په هغه زمانه کښې د روسی فوځونو د حملې په صورت کښې د هغوی په لار کښې څو صورته مشکلات وو ـ د دې نه علاوه د برطانوی هند او افغانستان ترمینځه هم د سیکانو، امیران سنده، او بلوچستان ازاد ریاستونه قائم وو ـ او د دې ریاستونو په وجه برطانوی هند او افغانستان هم د یوبل نه ډیر لرې وو ـ پس په هغه موقع په افغانستان باندې د دې خطراتو د پیش بندئ په خاطر د انګریزانو له خوالام ترلی یو غلط کار وو ـ لیکن د افغانستان د جنګ اول (۱۸۳۹ء) نه پس تر دې وخته (۱۸۶۹ء) چه امیر شیرعلی خان د

افغانستان تخت په خپل طاقت دوباره حاصل کړو. حالات ډیر بدل شوی وو. په دے دوران کښے حکومت روس په مختلفو ذریعو د خپل سلطنت پوله د افغانستان قطبی بریدے ته را نزدے کړی. که چرے د امیر شیرعلی خان او لارډ میو د ملاقات په موقع د دواړو حکومتونو ترمینځ دوستانه معاهده شوے وے. او انګریزانو د امیر دغه ټول شرطونه کوم چه ئے وروستو د ډیرے خرابئ نه پس په پیښور کښے او منل هغه وخت په خوشحالئ منلے وے نو نه به د افغانستان دویم خونړے جنګ واقع شوے وو او نه به روسیانو ته دافغانستان په معاملاتو کښے د دخل موقع په لاس ورغلی وه. ولے د بده مرغه دا سے او نه شول.

د لارډ میو هندوستان ته د راتلو سره سم په انګلستان کښے د قدامت پسند وزارت چه لارډ میو د دهغوی د پالیسئ سرے وو. مات شو. او د دے په ځائے "لبرل وزارت" قائم شو. دے وزارت لارډ میو خو واپس او نه غوښتلو ولے د افغانستان سره ئے دیوے مستقلے معاهدے کولو نه منع کړو. دغه وجه وه چه د لارډ میو او امیر شیر علی خان د ملاقات نه هغه نتیجے برآمد نه شوے دکوموچه توقع کیدے شوه.

په ۱۸۷۳ کښے روس په "خیوا" قبضه اوکړه. او امیر شیر علی خان ته دخپل سلطنت د تالا کیدو خطره نوره سرګنده شوه. له دے کبله هغه د انګریزی حکومت سره د دوستانه معاهدے کولو په غرض خپل یو سفیر هندوستان ته اولیږلو. دغه وخت د هندوستان ګورنر جنرل لارډ نارتهـ بروک وو. ولے د امیر شیر علی خان سفیر په خپل مقصد کښے کامیاب نه شو. او د هند حکومت امیر ته څه داسے د تسلئ جواب ورنه کړو. چه دغه ئے د روس د خطرے نه بے غمه کړے وے. د انګریزانو د دے دوه مخیزے پالیسئ نتیجه دا شوه چه د امیر او انګریزی حکومت تعلقات نور هم کمزوری شول. او هغه ئے په دے خبره مجبور کړو چه دخپل حفاظت په غرض د روس خوا ته نزدے شی.

په ۱۸۷۴ کښے په انګلستان کښے د لبرل وزارت په ځائے بیا د قدامت پسند وزارت قائم شو. او دلارډ نارتهـ بروک په ځائے "لارډ لټن" د هند وائسرائے شو. هم په دغه کال حکومت روس دکوقند په باقی نیم ریاست هم قبضه اوکړه. دغه وخت انګریزانو ته هم ښه واضحه شوه چه د روس خونړی بلا په وازه خُله ورو ورو د هند په لور را نزدے کیږی. له دے کبله نوی وزارت د هند وائسرائے ته د امیر شیرعلی خان سره د سرد وباره دوستانه تعلقاتو قائمولو اختیار ورکړو. او د امیر شیر علی خان هغه ټولو شرطونو منلو ته تیار شو کوم چه د نارتهـ بروک په وخت کښے په ډیرے بے پروائی

او غاورتوب ردکړے شوی وو۔ امیر شیر علی خان هم د انګریزی حکومت سره د دوستانه تعلقاتو خواهشمند وو۔ ولے هغه په دے خبره پوهه وو چه په کابل کښے به د انګریزانو د سفیر په موجودګئ په پښتنوکښے بیا لوئ شورش پیدا شی۔ هغهٔ ته د شاه شجاع انجام یاد وو۔ او ځکه هغه په کابل کښے د انګریزی سفیر د موجودګئ شرط منلو ته تیارنهٔ وو۔ بل طرف ته لارډ لټن هم یو جلد باز او تحکم پسند حاکم وو۔ هغه د دے شرط په منظورولو کښے ډیر شدت اختیارکړو۔ او امیر شیرعلی خان ته د هغهٔ ارادے مشکوکے ښکاره شوے۔ حکومت هند په کابل کښے د انګریزی سفیر په قیام ځکه اصرارکولو چه په ۱۸۵۵ء کښے چه د دوست محمد خان او انګریزانو ترمینځه کومه معاهده شوی وه د هغې د ځلوم شرط مطابق په کابل، قندهار، بلخ وغیره کښے امیر دوست محمد خان د انګریزی سفیر په قیام رضامند شوے وو۔

یو طرف ته د امیر شیر علی خان او انګریزی حکومت ترمینځه د انګریزی سفیر د تقررئ په باب کښے کشمکش جاری وو۔ بل طرف ته هم په دغه ورځو کښے انګریزانو د کوټے ښار د خان قلات نه په خپله قبضه کښے واخست۔ او امیر شیر علی خان ته په دے خبره هم د انګریزانو ارادے مشکوکے ښکاره شوے۔ ځکه چه د بولان په لاره په قندهار ډیر زر حمله کیدے شوه۔ سربیره په دے انګریزانو هم په دغه زمانه کښے په کلکت کښے خپله ایجنسی قائمه کړه۔ د دے واقعاتو په رڼا کښے امیر شیر علی خان د انګریزانو د خیر نه داسے مایوس شو چه د هغوی سره ئے هیڅ قسم تعلق قائمولو ته زړهٔ نهٔ کیدلو۔ په ۱۸۷۶ء کښے په یورپ کښے د «سرویا» او «مانټي نیګرو» ریاستونو د حکومت عثمانی نه بغاوت اوکړو۔ حکومت روس هم د دے باغی ریاستونو په مرسته کښے په عثمانی حکومت حمله اوکړه۔ بل لوری ته انګریزان د عثمانی حکومت په مرسته اودریدل۔ د دے نتیجه دا شوه چه روسی حکومت د ترکانو سره صلح اوکړه۔ او په کوم غرض چه ئے په ترکانو حمله کړی وه هغه پوره نهٔ شو۔ ولے د انګریزانو نه ئے دا بدل داسے واخست چه د هندوستان په مغربي سرحد ئے انګریزانو ته د خپلے حملے حقیقی ویره پیدا کړه۔ او د دے سره ئے سم د کابل دربار ته یو سفارت هم اولیږلو۔ امیر شیر علی خان چونکه د انګریزانو د رویے نه آزرده وو نو روسی سفارت ته ئے په ډکه خله او رون تندی هرکلے اووئیلو۔

په دے موقع که د هند وائسرائے لارډ لټن د سنجیدګئ نه کار اخستے وے۔ او د موقع نزاکت او د شیرعلی خان مشکلاتو ته ئے کتلے وے۔ نو خبره به نه وه خرابه شوی۔ ولے د روسی سفارت په سیالئ کښے لارډ لټن هم کابل ته د یو انګریزی سفارت لیږلو فیصله اوکړه۔ او د «سرنیول

چیمبرلین » په مشرۍ کښې ئې د خیبر په لار یو انګریزي جرګه افغانستان ته اولیږله. ولې په دغه ورځو کښې امیر شیر علي خان د انګریزانو د دوستۍ نه مایوسه شوے وو. او دا پالیسي ورته غوره ښکاره شوې وه. چه د خپل حفاظت دپاره یو داسے طاقت (روس) ته نزدے کیدل پکار دي. چه د هغهٔ په خیال کښې د هغه ځواني دوستانو (انګریزانو) هم د هغهٔ د مقابلې نه په خپل وس ځان ژغورلو. دغه وجه وه چه امیر شیر علي خان په خپل ملک کښې د انګریزي سفارت پریښودلو ته تیار نهٔ شو. ولې په دے خبره د هند وائسرائے لارډ لټن امیر شیر علي خان ته په اوبو کښې نولے خولے شو. او د هغهٔ دا فعل ئې د خپل حکومت توهین اوګڼلو. او دامیر نه ئې د معافۍ غوښتلو او په خپل ملک کښې د انګریزي سفیر د پریښودلو مطالبه اوکړه. او د دے مطالباتو د منلو د پاره ئې یو هفته مهلت ورکړو. او چه دا مهلت ختم شو او د انګریزي حکومت مطالبه پوره نهٔ شوه نو حکومت هند د افغانستان برخلاف اعلان جنګ اوکړو. او دغه شان دافغانستان دویم جنګ هم انګریزانو هیڅ ئې هیڅه شروع کړو.

په ستمبر ۱۸۷۸ء کښې انګریزي فوځونه په درے طرفه په افغانستان ورننوتل. یو فوځ د بولان په دره لاړ او په قندهار ئې حمله اوکړه. بل فوځ د کرے په لار په افغانستان کښې داخل شو. او دریم فوځ د خیبر په لار افغانستان ته لاړ. د دے فوځونو څه خاص قابل ذکر مقابله اونهٔ شوه. امیر شیر علي خان د کابل نه او تښتیدهٔ. او ترکستان ته روان وو چه په لاره کښې وفات شو. په افغانستان انګریزانو قبضه اوکړه. په افغانستان حمله کول خو اسان دي ولې دا ملک په خپله قبضه کښې ساتل ډیر ګران دي. انګریزانو ته دا حقیقت دافغانستان په اول جنګ کښې هم ثابت شوے وو. او د دے جنګ هم دا حقیقت ثابت کړو. د امیر شیر علي خان په وفات د هغهٔ مشر ځوئے یعقوب خان د افغانستان امیر شو. په مئ ۱۸۷۹ء د امیر یعقوب خان او برطانوي حکومت تر مینځه د ګندمک په مقام یو معاهده اوشوه. د دے معاهدے له مخه امیر په کابل کښې د یو انګریز سفیر ساتلو ته غاړه کیښوه. د دے نه علاوه د لورالائۍ، ژوب، پښین، او نوشکي ضلع هم د انګریزانو په قبضه کښې ورکړے شوے. او په ټولو درو باندے هم دانګریزانو قبضه اومنلے شوه. په ۲۴ر جولائۍ ۱۸۷۹ء میجر سر لوی کیوګناری د برطانوي حکومت د سفیر او نمائنده په حیثیت کابل ته راغے. د دے معاهدے له مخه افغانستان بالکل د انګریزانو په پنجه کښې ګیر شو. او په ظاهره کښې ئې د خلاصي څه صورت نهٔ ښکاریدلو.

ولې تاریخ په خپله اعاده کښې د ځانځ نهٔ کوي. د انګریزي سفیر د راتلو نه یوه نیمه میاشت پس د انګریزانو برخلاف د پښتنو جذبات ناڅاپي اوپاریدل. او په ملک کښې یو عام بغاوت خور

شو - او د جنګ مړ اور بیا تازه شو - د دې بغاوت اصلي حقیقي اسباب نهٔ معلومیږي - د دې یو وجه دا بیانیږي چه انګریزي سفیر چیل ځان حاکم اعلیٰ ګڼلو - او په انتظامي معاملاتو کښې ئې مداخلت شروع کړو - او دا خبرې په پښتنو سردارانو ناسازه لګیدلے - دا هم ویلے شي چه د سردار عبدالرحمان مور د پښتون فوځ سالار داوٗد شاه ته د رشوت په ډول درې زره اشرفۍ په دې غرض ورکړې وې چه هغه سفیر قتل کړي - ځکه چه د سفیر د قتل په وجه به امیر یعقوب خان بد نام او د ملک نه به ورک شي - او د هغې ځوئې (عبدالرحمٰن) ته به د تخت کابل د حصول موقع په لاس ورشي - دا قیاس امکان هم لري ځکه چه هم په دغه ورځو کښې عبدالرحمٰن د یوولسو کالو د جلا وطنۍ نه پس په افغانستان کښې داخل شوې او د حکومت د حصول په تابیا کښې په ډیرې سرګرمۍ لګیا وو - دا هم ویلے شي چه یو دوه پلټنو د کمې تنخواه په وجه بغاوت اوکړو - او عام خلق هم د هغوی سره ملګري شول - به هرحال د دې بغاوت اسباب چه هرڅه وو لیکن یوه خبره یقیني وه - او هغه دا چه د افغانستان پښتانهٔ په خپل ملک کښې د انګریزانو قبضې او حکومت ته هیچرې نهٔ رضا کیدل - او د انګریزي سفیر د راتلو او د هغهٔ د انتظام نه به دوئ هم دغه نتیجه اخذ کړي وي - چه انګریزان په دې ملک د مستقلے قبضې اراده لري -

عرض عام اولس او یاغیان د سفارت خانې نه تاوٗ شول - او د سنه ۱۸۴۱ء واقعات ئې بیا سر دوباره کړل - چه هغه وخت سر الیګزینډر برنس او میکناټن قتل شوي وو - او دا ځل ہ سر کیوګناري ،، د خپلو ملګرو سره قتل شو - ولے په دواړو موقعو کښې صرف دومره فرق وو چه په اوله موقع کښې د ،، برنس ،، تصویر د هغهٔ د خپلې بد اعمالۍ له کبله تت وو - او په دې دویمه موقع کیوګناري د خپلې بے ګناهۍ له کبله ډیر ځرګند وو - دا بغاوت هم بالکل ناڅا په او د امیر یعقوب خان د صلاح نه بغیر شوې وو - دغه وجه وه چه هغهٔ هم دا یو اتفاقي واقعه اوګڼله - او د سفیر د قتل اطلاع ئې په خپله حکومت هند او د انګریزي فوځونو سالار ته ورکړه - د بغاوت او د سفیر د قتل واقعے د انګریزي حکومت دستګو په وړاندې د هغه وړومبي جنګ واقعات پیش کړل - دغه وجه وه چه لارډ لټن په ډیرے تادۍ د جنرل رابرټسن په کمان کښې یو بل فوځ افغانستان ته اولیږلو - د سفیر د قتل الزام په امیر یعقوب خان عائد شو - اګرچه هغهٔ د خپلې بے ګناهۍ په حقله ډیر عذرونه پیش کړل - ولے کامیاب نهٔ شو او په یکم دسمبر سنه ۱۸۷۹ء د شاهي قیدي په حیثیت هندوستان ته اولیږلے شو - او د خپل ژوند باقي حصه ئې په هندوستان کښې د نظر بندۍ په حالت کښې تیره کړه - دا بغاوت څو ورځې جاري وو - ولے انګریزي فوځونو په ټولو اهمو مقاماتو قبضه اوکړه - او حالات ئې قابو کړل -

د انګریزی حکومت دا اراده وه چه د قندهار او کابل دوه صوبې تشکیل کړی او د هندوستان سره ئې شامل کړی. ولې د دې تجویز په مقله په انګلستان کښې لبرل پارټۍ ډیره غوغا پورته کړه. او په ډیر شدت سره ئې د دې تجویز مخالفت اوکړو.

په دې ورځو کښې یو طرف ته سردار عبد الرحمان په افغانستان کښې د خپل حکومت د قیام کوشش کولو. بل لور ته د امیر یعقوب خان کشر ورور سردار ایوب خان هم دخپلې بادشاهۍ دپاره سرتندې وهلو. سردار ایوب خان د یو فوځ سره د قندهار دنیلې په نیت د هرات نه روان شوې وو. د دهٔ او انګریزانو مقابله د «میوند» په مقام اوشوه. په جنګ کښې سردار ایوب خان کامیاب شو. او انګریزی فوځونو ته ډیر زیان اورسید. لیکن دا فتح تر ډیرو ورځو د ایوب خان نصیب نهٔ شوه. جنرل رابرټس په ډیرې تادۍ دکابل نه قندهار ته لاړ. او ایوب خان ته ئې شکست ورکړو. سردار ایوب خان بیا هرات ته لاړ. او په قندهار بیا د انګریزانو قبضه شوه. د دې نه پسته د سردار ایوب خان او عبدالرحمان ترمینځه یو جنګ اوشو چه په هغې کښې عبدالرحمان کامیاب شو. او سردار ایوب خان د دې مسلسل ناکامیځو په وجه مایوسه شو. او ایران ته لاړ. دغه شان عبد الرحمان ته په افغانستان کښې میدان خالی پاتې شو. چونکه انګریزی حکومت ته د افغانستان د دوروسټی جنګ نتائج لا یاد وو نو هغوی دکابل او قندهار نه د خپلو فوځونو د ایستلو او د سردار عبدالرحمان د امارت منلو اراده اوکړه. په دې لړکښې وائسرائے هند د انګلستان د حکومت سره خط وکتابت اوکړو. او د دې په نتیجه کښې برطانوی حکومت په ۱۴ مارچ ۱۸۸۰ء هغه د افغانستان والی تسلیم کړو. او د دې اطلاع ورکولو په غرض ئې «سر لیپل ګریفن» کابل ته اولیږلو. په دې سلسله کښې د سرګریفن او امیر عبد الرحمان ترمینځه د خطونو تبادله اوشوه. اخر په ۳۰ اپریل ۱۸۸۰ء سرګریفن د یو خط په ذریعه د امیر عبدالرحمٰن نه د تخت کابل د سمبالولو استدعا اوکړه. د دې خط په جواب کښې امیر عبدالرحمان هغهٔ ته دا اولیکل:

« د تخت کابل د سمبالولو نه اول د یو څو خبرو رڅول ضروری دی. یعنی (۱) زما د حکومت حدود به ترکومه وی؟ (۲) دقندهار صوبه به زما په حکومت کښې شامله وی او که نه؟ (۳) انګریزی سفیر یا انګریزی فوځ به په کابل کښې موجود وی؟ (۴) د سلطنت برطانیه د یو دشمن په مقابله کښې به زما نه څه توقع ساتلې شی؟ (۵) سلطنت برطانیه ما ته او زما ملک ته څه فائدهٔ رسول غواړی؟ - (۶) او د دې په بدل کښې زما نه دکوم خدمت توقع ساتی؟ -

د دې خط په جواب کښې سرګریفن په ۱۴ جون ۱۸۸۰ء هغهٔ ته دا اولیکل چونکه د

برطانوی حکومت په خیال کښې بیرونی حکومتونو ته داحق حاصل نهٔ دے چه هغوی دِ د افغانستان په معاملاتو کښې دخل اندازی اوکړی. او سلطنت روس او سلطنت ایران د افغانستان په معاملاتو کښې د عدم مداخلت اقرار کړے دے. په دے بنا دا ظاهره ده چه د افغانستان حکمران بے د انګریزانو نه د بل یو بیرونی طاقت سره سیاسی تعلقات قائم نهٔ شی ساتلے. او که چرے یو داسے بیرونی طاقت د افغانستان په معاملاتو کښې مداخلت اوکړو. او د دے مداخلت په وجه د افغانستان په حکمران باندے بے ځایه زیاتے اوشو نو برطانوی حکومت به د والئ افغانستان مدد ته په دے شرط تیار وی. که چرے هغه د برطانوی حکومت په مشوره کارکوی.

دوئم د قندهار صوبه به د امیر افغانستان د حکومت نه جدا وی. د پښین او سبي علاقے به د انګریزانو په قبضه کښې وی. په دے بنا برطانوی حکومت د دے معاملاتو په حقله خبرو اترو ته په هیڅ صورت تیار نهٔ دے. او نهٔ د هغه بند وبست په حقله څه نوی خبرے اترے کول غواړی. کوم چه د سابق امیر یعقوب خان سره د شمال مغربي سرحد په حقله شوے وے. په دے شرطونو برطانوی حکومت دا منظوروی چه په افغانستان باندے سره د هرات (رچه ستا د پاره د هغ د احستلو هیڅ ذمه واری برطانوی حکومت په ځپل سر نهٔ اخلی) که چرے ته د هغ د احستلو تا بیا کوے نو برطانوی حکومت به په هغ کښې خرچ نه اچوی او دغه شان تهٔ ځپل سلطنت خورولے شے. برطانوی حکومت دا اراده هم نهٔ لری. چه د افغانستان په کورنو معاملو کښې مداخلت اوکړی. د تاسو نه به دا استدعا هم نهٔ کیږی چه په کابل کښې یو انګریزی سفیر قبول کړئ. اګرچه د طرفینو د تعلقاتو د بهترئ د پاره د دواړو حکومتونو په اتفاق به د برطانوی حکومت یو مسلمان نماشده په کابل کښې پاتے کیدل موزون اوګڼلے شی.

په ۲۲، جون سنه۱۸۸۰ء امیر عبدالرحمان د دے خط په جواب کښې دا اولیکل چه د قندهار په جدا کیدو هغه رضا نهٔ دے. د دے نه پس په ۲۰، جولائی سنه۱۸۸۰ء پښتنو سردارانو امیر عبدالرحمان د افغانستان امیر تسلیم کړو. هغه وخت لا د امیر عبدالرحمان او سرګریفن تر مینځه دخطونو تبادله جاری وه. چه په انګلستان کښې د قدامت پسندو وزارت مات شو. او د لبرل پارټئ وزارت قائم شو. او د دے په نتیجه کښې د لارډ لټن په ځائے لارډ رپن د هندوستان وائسرائے مقرر شو. نوی وزارت د څه شرط نه بغیر امیر عبدالرحمان د افغانستان امیر اومنلو. او په دے دول د افغانستان دا دوئم جنګ ختم شو.

د افغانستان دا دویم جنګ هم څه خو د "ډزرائیلي" (وزیراعظم انګلستان) د پیش قدمۍ د پالیسۍ نتیجه وه. او څه د لارډ لټن د تحکم پسند طبیعت زبردستي او په حقیقت کښې یوه لویه غلطي وه. په واقعاتو کښې امیر شیرعلي خان نه خو د روسیانو دوستۍ ته تیار وو او نه تیاریده. ده د انګریزانو د دوستۍ د حصول په لړ کښې هڅه پوره وس کړې وو. ولې په هره موقع به انګریزانو هغه تش په خبرو او غولولو. او د سکوت امداد وعدې ورسره نه کوله. انګریزانو د روس په زباني او دروغو وعدو د امیر شیرعلي خان اخلاص او دوستۍ ته ترجیح ورکړې وه. او د حقیقت پسندۍ نه ئې سترګې پټې کړې وې. او د خپلې دوه مخیزه پالیسۍ په نتیجه کښې هغه د دې خبرې ته مجبور کړو. چه د خپل ځان او د خپل ملک د حفاظت د پاره د روس خوا اونیسي. ځکه چه واقعاتو د امیر دا خیال پیدا کړې وو چه انګریزان هم په خپل وس د روس مقابلې ته ځ نه نیسي.

# امیر عبدالرحمٰن

امیر عبدالرحمان د افغانستان یو زبردست حکمران ثابت شو. د ده نه وړاندې د افغانستان سلطنت یو بې قاعده سلطنت وو. ولې امیر عبدالرحمان د یو با قاعده او باضابطه افغانی ریاست بنیاد کېښود. د موجوده افغان ریاست بانی په حقیقت کښې هم دے ګڼلے شي. امیرعبدالرحمان یو ډیر سخت ګیر او په زړه سخت حاکم وو. مجرمانو ته به ئې د وحشت او بربریت د زمانې رنګا رنګ سزا ګانې ورکولې. لیکن په دې کښې هغه ګرم هم نه وو. د افغانستان خانانو او بااقتداره امیرانو به په عام اولس ډیر ظلمونه کول. او د حکومت ضابطې او آئین ته به ئې غاړه نه کېښوده. لیکن امیر عبدالرحمان د دې مقتدرو خانانو زور او قوت بیخي ختم کړو. هغه په خپل حکومت کښې د جاسوسانو یو جال خور کړے وو. دا جال دومره لوئ او وسیع وو چه د امیر د جاسوسانو د ویرې نه به په خپل کور کښې د حکومت برخلاف چا څه نه شو ویلے. د ده په وخت کښې د جائیدادونو ضبطي، د ملک نه اخراج او د معمولي شک وشبهې په بنا وژل یوه عامه خبره وه. د دغه وجه وه چه په دې زمانه کښې د افغانستان اکثر پوهان او مقتدر خلق د ملک نه فرار شوي وو. په دې دور کښې نه خو په ملک کښې چرته سړک جوړ شوے وو. او نه د عوامو د سهولت او سوکالئ د پاره څه نور انتظامات موجود وو. بلکه دا دور په مکمله طریقه یو استبدادي دور وو.

د امیر عبدالرحمان دا کلکه عقیده وه چه که چرې د ملک د مختلفو خطو په استوګنو او مختلفو قامونو او قبیلو کښې تر خپل مینځه باهمي ربط او ژور تعلق پیدا نه کړے شي او هغوی په یو مزي کښې او نه شي پیرلے. او هره قبیله او خطه د بل وینو ته تږي ناست وي. نو هغه قام او ملک نه ترقئ کولے شي. او نه په خپلو پښو او دریدلے شي. امیر عبدالرحمٰن د خپل ملک د دغه کمزوریانې څرګندې لیدلې. او هغه د خپل عمر ډیره حصه هم د دې کمزوریو په لرکولو کښې صرف کړه. په دې لړ کښې هغه د غیر معمولي سنګدلئ او جبر نه هم کار واخست لیکن د هغه د دې سخت ګیرې پالیسئ نتیجه دا شوه چه هغه د خپل انتقال په وخت کښې

د یو متحده حکومت په تاسیس کښې کامیاب شوې وو.

امیر عبدالرحمان د یو ویښ او بیدار دماغ خاوند وو. په سیاسي معاملاتو کښې ئې ډیر مهارت لرلو. د ملک د اندروني تنظیم او قیام امن نه پس هغهٔ د خپل سلطنت د حد بندۍ په لور توجه اوکړه. امیر د دوو زبردستو سلطنتونو (روس او برطانوي هند) ترمینځه ګیر وو. ولې هغهٔ په خپل تدبر دے دواړو حکومتونو ته دا موقع په لاس ورنهٔ کړه. چه د دهٔ په اندروني معاملاتو کښې مداخلت اوکړي. سلطنت روس اګر چه په ظاهره کښې د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د مداخلت او په دے ملک کښې د پیش قدمۍ نهٔ کولو اقرار کړے وو. لیکن هغه په دے اقرار ټینګ پاتې نهٔ شو. چنانچه په سنه ۱۸۸۵ء کښې چه امیر عبدالرحمان د وائسرائے هند په دعوت هندوستان ته راغلے وو. او په راولپنډۍ کښې ئې د وائسرائے سره ملاقات کولو. حکومت روس د افغانستان په یو سرحدي څوکۍ "پنجده" حمله اوبیا قبضه اوکړه. د روس د دے حملے اطلاع وائسرائے هند په خپله امیرصاحب ته ورکړه. او امیر په ډیر استقلال دا خبر واوریدلو. دا د ډیرے خطرے موقع وه. امیر عبد الرحمان د سلطنت روس په دے حرص ناکه رویه او پیش قدمۍ ډیر فکرمند وو. انګریزي حکومت هم په دے حرص ناکه رویه او پیش قدمۍ ډیر فکرمند وو. انګریزي حکومت هم په دے خبره ډیر قهرشوے وو. او د جنګ یو زبردسته خطره راولاړه شوې وه. مګر د لارډ ډفرن وائسرائے هند په مصالحه کوشش د جنګ خطره لرے شوه. د افغانستان او سلطنت روس ترمینځه د حد بندۍ د پاره یوه جرګه مقرر شوه. د دے جرګے د فیصلے په رڼا کښې د روس او افغانستان ترمینځه رود آمو د بیلتون برید مقرر شو. او په دے ډول د هرات په لور د روسیانو د پیش قدمۍ خطره ورکه شوه. (سنه ۱۸۸۶ء).

د هندوستان په شمال مغربي سرحد واقع ټولے درے چه د افغانستان له خوا را وتلے وے. د معاهده ګندمک له مخه د انګریزانو په قبضه کښې وے. د دے نه علاوه په کوټه باندے هم د انګریزانو قبضه وه. او په وادۍ ژوب کښې د چمن پورے د ریل پټلۍ دوئ غزولې وه. د دے واقعاتو په رڼا کښې د امیر عبدالرحمن سره د انګریزانو د پیش قدمۍ خطره هم پیدا شوې وه. په دے غرض هغهٔ د انګریزانو سره هم د حد بندۍ په حقله خبرے اترے شروع کړے. ولے انګریزانو د امیر سره په حد بندۍ قاشولو کښې ټیل جب کولو. د دے نه وړاندے امیر عبدالرحمان په خپل ملک کښې دوه زبردست بغاوتونه چه

یو د قندهار په علاقه کښې د غلجیانو په کال ۱۸۹۰ئ کښې او بل په هزاره جات کښې هزاره قام په کال ۱۸۹۳ء کښې کړے وو- په ډیرے سختئ ختم کړی وو- او دغه وخت هغهٔ ته په خپل ملک کښې د بغاوت څه خطره نهٔ ښکاریده-

امیر عبدالرحمان د حکومت هند سره د خپل سلطنت د حد بندئ قاشولو په حقله ډیر لیواله وو لیکن انګریزان دے حد بندئ ته تیار نهٔ وو- په کال ۱۸۹۳ء کښې انګریزانو په "وانا" قبضه اوکړه- او د دے علاقے مشران ئے امیر عبدالرحمان ته اولیږل- امیر عبدالرحمان دے خلقو سره ډیر دارومدار اوکړو- دغه وخت انګریزانو ته هم خپله غلطی معلومه شوه- او هغوی سمدستی امیر عبدالرحمان سره د حد بندئ قاشولو ته غاړه کیښوه- او د حکومت هند له خوا د "سر مارټیمر ډیورنډ" په مشرئ کښې یوه جرګه کابل ته اولیږلے شوه- د امیر عبدالرحمان او د سر مارټیمر ډیورنډ تر مینځه یو معاهده اوشوه- او د افغانستان او برطانوی هند تر مینځه د بیلتون بریده قائمه کړے شوه- دا بریده د ډیورنډ لائن په نامه مشهوره ده- په دے معاهده په کابل کښې په ۱۲ ر نومبر ۱۸۹۳ء امیر عبدالرحمان او مارټیمر ډیورنډ دستخطونه اوکړل- د دے معاهدے څنې ضروری خبرے دا دی:-

(۱) د امیر عبدالرحمان د عملدارئ مشرق او سویلی پوله د واخان نه د فارس د سرحد پورے هغه کرښه مقرر شوه چه کومه په منسلکه نقشه کښې راښکلی شوی ده-

(۲) د هند برطانوی حکومت د دے خبرے اقرار اوکړو- چه د دے کرښے نه بهٔ دافغانستان په لور واقع سرحداتو کښې هیڅ مداخلت نهٔ کوی- هم په دے ډول امیر افغانستان اقرار اوکړو چه د دے کرښے نه به د هندوستان په لور واقع سرحداتو کښې هیڅ قسم مداخلت نهٔ کوی-

(۳) امیر عبدالرحمان اقرار اوکړو چه په سوات، بنیر، باجوړ، دیر او چترال کښې به هیڅ قسم مداخلت نهٔ کوی- او هم په دے ډول به د وزیرستان او "دوړو" د علاقے سره څه تعلق نهٔ ساتی- او برطانوی حکومت رضا شو- چه "برمل" په علاقه کښې به دوئ څه مداخلت نهٔ کوی-

(۴) د بریدے کرښه به وروستو په تفصیل سره د انګریزی او افغانی کمشنرانو په ذریعه قائموله شی- او د دے منشا به داوی چه د طرفینو په رضا سره یو داسے سرحدی کرښه په مزکه راښکلے شی- چه تر وسه وسه پورے د نقشے د کرښے سره مطابقت لری-

(۵) دا معاهده حکومت هند او حکومت افغانستان یو داسے قابل تسلیم فیصله ګڼي،

چه په کښې دراتلونکي هیڅ اختلاف نشته ـ او د افغانستان امیر دا وعده کوی چه د دے حدبندئ فیصله به هغه افسران په دوستانه طریقه کوی کوم چه د دے بریدے دقائمولو د پاره مقرر کړے شی ـ په دے غرض چه د آئنده دپاره د دواړو حکومتونو په مینځ کښې هیڅ غلط فهمئ پیدا نهٔ شی ـ د دے معاهدے له مخه د امیر افغانستان سالانه امداد د دولسو لکو روپو په ځائے اتلس لکه روپۍ مقرر شو ـ د ډیورنډ لائن نه په دواړو لورو د مختلفو ښارونو فاصلې په دے ډول دی:ـ

د ډیورنډ کرښے نه د پېښور فاصله (۳۵) میله او کابل د دے کرښے نه (۱۵۷) میله لرے دے ـ د کوهاټ فاصله د دے کرښے نه (۱۷۵) میله ـ ټل (۳۲) میله ـ بنوں (۸۰) میله د بنوں په لور کیتو (۳۸) میله ـ ډیره اسماعیل خان (۱۳۶) میله ـ کوټټه (۷۸) میله او د کوټټے په لور کابل د دے کرښے نه (۱۰۸) میله او غزنی (۸۷) میله دے ـ

د دے بریدے په قائمېدلو دواړو حکومتونو ته د خپل اثرو نفوذ او عملداری دائره ښکاره شوه ـ د دے بریدے نه په سرخاتهٔ د هند په لور ازاد قبائیل د برطانوی حکومت زیراثر شول ـ او په دے قبائیلو باندے د خپه اثر و نفوذ او سیاسی اقتدار په مقله دافغانستان حکومت د هرقسم دعوو نه دست بردار شو ـ او د مداخلت نهٔ کولو اقرارئے اوکړو ـ امیر عبدالرحمان په دے معاهده ډیر مطمئن وو ـ او د هغهٔ دا اطمینان د هغهٔ د خپلو الفاظو نه ظاهر دے ـ د دے معاهدے په مقله هغه داسے وائی:ـ

سر مارټیمر ډیورنډ په ۱۹، ستمبر ۱۸۹۳ء د پېښور نه د کابل په نیت رروان شو ـ د کابل په حدود کښې د داخلېدو نه پس د دے جرګے استقبال ته زما جرنیل غلام حیدر خان چرخی ولاړ وو ـ دا جرګه په ۲، اکتوبر کابل ته راغله ـ او د دوئ په اعزاز کښې دیو ویشت توپو سلامی اوشوه ـ ما د خپل ځوی حبیب الله خان په مکان کښې د دوئ د قیام بندوبست کړے وو ـ د رسمی دربار نه پس موږ زر په اصلی معاملاتو بحث شروع کړو ـ ډیورنډ یو ماهر سیاست دان او ډیر ښهٔ فارسی خوان دے ـ خبره ډیره زر روغه شوه ـ لیکن په دے غرض چه زما، د مارټیمر ډیورنډ او د مشن د نورو افرادو د خلے نه وتلے هر لفظ دِ په ریکارډ کښې محفوظ شی ـ ما خپل میر منشی سلطان محمد خان د پردے شاته کښېنولے وو ـ دے نهٔ خو چا لیدلے شو ـ او نهٔ زما نه بغیر د دهٔ په موجودګئ بل څوک خبروو ـ دهٔ ته ما هدایت کړے وو چه هر هاغه خبره چه دوئ ئے ما سره کوی او که په خپل مینځ کښې خواه که هغه په فارسئ کښې وی او که په انګریزئ کښې هغه دِ لفظ به لفظ لیکی ـ او هغهٔ (سلطان محمد خان)

زموږ دا ټولې خبرې په شارټ هینډ کښې اولیکلې - او زما د ډیورنډ او د هغې د نورو افرادو ترمینځ چې کومې خبرې شوې وې هغه په دفتري ریکارډ کښې محفوظ دي. د دې ټولو خبرو اترو نتیجه دا شوه چې د حد بندۍ هغه کرښه چې طرفینو پر اتفاق اوکړو - د چترال او بروغل نه تر پېښوره رسي - او بیا د کوږ سیاه پورې په دې ډول چې واخان، کافرستان، اسمار، د لال پورې مهمند او د وزیرستان یو حصه (برمل) زما په حکومت کښې راغله - او ما د نیوچمن ریلوې سټېشن، چاغی، د برمل نه علاوه د ټول وزیرستان، بلند خیل، کرم، افریدي، باجوړ، سوات، بنیر، دیر، چیلاس او چترال په باب کښې د خپلو دعوو او حقونو نه دست برداري اختیار کړه -

" دا مشن په ۱۴، نومبر ۱۸۹۳ء د کابل نه رخصت شو - د دوئ دا قیام ډیر خوشګوار وو - او د دې معاهدې په وجه هغه ټولې غلط فهمۍ او تنازعې چې د دې علاقو په حقله به پورته کیدلې ختم شوې او هر کله چې د حد بندۍ کرښه د مذکوره معاهدې مطابق د دواړو حکومتونو د کمشنرانو په نګرانۍ کښې قائمه کړې شوه نو د عام سکوت او اطمینان فضا خوره شوه. او زه د الله تعالیٰ نه خواست کووم چې دا فضا د تل قائمه وي "

د ډیورنډ معاهدې[1] په حقله د امیر عبدالرحمان د اطمینان یو بل ثبوت دا هم دې چې په ۱۸۹۷ء کښې چې د وزیرستان او د پښتنو نور آزاد قبائیل د انګریزانو برخلاف پورته شوي وو - او د انګریزانو سره په خونړي جنګونو کښې لګیا وو - د غه وخت امیر عبدالرحمان بالکل غیر جانبدار وو - که چرې دا قبائیل هغه د خپل اقتدار په دائره کښې شامل ګڼلې نو یقیناً د دوئ مرسته به ئې زباني یا عملي څه خو کړې وه - ولې هغه د قبائیلو د دې شورش په دوران کښې بیخي خاموش وو - او دا د دې خبرې څرګند ثبوت دې چې ډیورنډ لائن د هغه په خیال کښې یو بین الاقوامي حیثیت لرلو - او د قبائیلو دا شورش د هغه په خیال کښې د حکومت هند یو کورنۍ معامله وه - د ډیورنډ معاهدې تصدیق د امیر عبدالرحمان نه پس د هغه نورو جانشینانو هم په خپل خپل وخت کړې دې -

د ډیورنډ سره د معاهدې نه پس امیر عبدالرحمان ته د ملکه انګلستان له خوا نه انګلستان ته د راتلو دعوت ورکړې شو - امیر دا دعوت منظور کړو - ولې د خپلې بیماري له کبله ئې دې اوږد سفر ته غاړه

---

[1] د دې معاهدې په نتیجه کښې د دواړو حکومتونو یو مشترکه کمیشن په زمکه باندې د برید قائمولو لړ کښې دوه، کاله لګیا وو - او چې دا کار مکمل شو نو د کمیشن د رپورټ نه پس بله معاهده هم اوشوه - او د فریقینو نمائندګانو پرې دستخطونه اوکړل -

کیښنبوه - او خپل ځوئ شهزاده نصرالله خان ئې اولیږلو - په انګلستان کښې د سردار نصرالله خان هم هغه شان عزت اوشو څه رنګ چه د یو بااقتداره ملک دیوشهزاده مناسب وی - د دے شهزاده په لیږلو کښې دامیر صاحب دا مطلب وو چه د ملکې معظمې سره د افغانستان د تعلقاتو په باب کښې خبرے اترے اوکړی - او د انګلستان حکومت په لندن کښې د افغانستان دیو نمائنده په قیام اماده کړی ځکه چه د هغهٔ دا منشا وه چه د افغانستان تعلقات دِ د حکومت هند په ځائے براه راست د حکومت انګلستان سره قائم شی - د امیر په خیال کښې به حکومت هند حکومت انګلستان د افغانستان داصلی حالاتو او واقعاتو نه نهٔ خبرولو - او په دے وجه به اکثر د دواړو حکومتونو ترمینځه غلط فهمئ پیدا کیدلے - لیکن حکومت هند د امیر صاحب د دے تجویز شدید مخالفت اوکړو - او شهزاده په دے کښې کامیاب نهٔ شو -

په ۱۸۹۵ء کښې امیر عبدالرحمان ته دقام د لوری نه د ,, ضیاء الملّت وَالدّین ،، خطاب ورکړے شو - او په ۱۸۹۶ء کښې هغهٔ د کافرستان ځنې علاقے فتح کړے - او د دے نوی علاقے نامه ئے نورستان کیښودله - د دے نه وړاندے دا علاقه بیخی آزاده وه - د دے علاقے خلق ډیر تورزن وو او د مسلمانانو سخت دشمنان وو - دا علاقه ډیره زرخیزه او د ټک راټک د پاره ډیره مشهوره ده - د مسلمانانو سره د سختے دشمنئ له کبله به دے خلقو ته ,, سرهٔ کافر ،، هم وئیلے شول - د دے علاقے خلق خصوصًا زنانه ډیرے ښکلی اوچے مخی دی -

د امیر عبدالرحمان په وخت کښې د افغانستان د امدن دوه لوئے ذریعے وے - یعنې یومالیه او بل د چونګی محصول - د امیر د تخت نشینئ په وخت کښې د حکومت خزانه خالی وه - د تخت نشینئ نه پس امیر عبدالرحمان په مالیه او محصول چونګی دواړو مدونو کښې زیاتے اوکړو - د هغهٔ دا اراده وه چه په هر دستور چه وی سالانه یو کروړ روپئ جمع کول پکار دی - او اګرچه هغهٔ په خپل ژوند کښې د دے مقرر رقم په جمع کولو کښې څو کامیاب نهٔ شو بیا هم د هغهٔ د مرګ په وخت کښې د حکومت په خزانه کښې لس کروړه روپئ موجودے وے -

امیر عبدالرحمان یو لوئے مدبر او سیاست دان وو - هغهٔ د خپلے دوراندیشئ او ضبط ونظم په سخت ګیرے پالیسئ د پښتنو سرکښی قبائیل خپل اطاعت ته اماده کړل - او د افغانستان په ملک کښې ئے د امن وامان داسے فضا پیدا کړه چه د خپل خاندان د پاره ئے د افغانستان تخت محفوظ کړو - د افغانستان د سیاست دا مجدد د فالج په عارضه په کال ۱۹۰۱ء کښې وفات شو -

# امیر حبیب الله خان

## سنه ۱۹۰۱ – ۱۹ ء

د امیر عبد الرحمان په وفات د هغهٔ مشر ځوئے سردار حبیب الله خان د افغانستان امیر شو - او برطانوی حکومت هم هغه د افغانستان امیر تسلیم کړو - په کال سنه ۱۹۰۵ء کښې برطانوی حکومت هند د " سر لوئیس ډین " چه د حکومت هند د خارجه معاملاتو سکتر وو - په مشرئ کښې کابل ته یوه جرګه اولیږله - د دے جرګے د لیږلو مقصد د هغه معاهدے تجدید وو کومه چه په سنه ۱۸۹۳ء کښې د برطانوی حکومت او امیر عبد الرحمان ترمینځ شوی وه - د دواړو حکومتونو ترمینځ بیا د هغه لوظونو او شرطونو (قرار او شو - کوم چه د سابق امیر (عبد الرحمان) په زمانه کښې د برطانوی حکومت او د هغهٔ په مینځ کښې شوی وو - امیر حبیب الله خان په دے الفاظو کښې د دے معاهدے تجدید اوکړو -

" کوم لوظونه او معاهدات چه زما د پلار اعلیٰ حضرت امیر عبد الرحمان مرحوم او د برطانوی حکومت ترمینځ شوی دی - ما په هغ ټولو عمل کړے دے - عمل پرے کوم ، او عمل به پرے کوم "

د دے جرګے د کامیابئ په وجه د امیر افغانستان او برطانوی حکومت ترمینځه تعلقات نور هم خوشګوار شول - په دے سلسله کښې د افغانی حکومت یو نمائنده د سفیر په ډول د وائسرائے په دربار کښې مقرر شو - په کال سنه ۱۹۰۷ء کښې د حکومت هند په دعوت امیر حبیب الله خان هندوستان ته راغے - او د لارډ منټو وائسرائے هند سره ئے ملاقات اوکړو - په دے موقع انګریزانو د امیر ډیره عزت افزائی اوکړه - او د برطانوی حکومت د لورې نه ورله د " هِز مجسټی " خطاب ورکړے شو - د سیاحت هند په دوران کښې امیر حبیب الله خان د علی ګړه مسلم یونیورسټی هم اوکتله - او د خپل طرف نه ئے یونیورسټئ ته پنځوس زره روپئ عطیه ورکړه -

د امیر حبیب الله خان د حکومت په اخری کالونو (سنه ۱۹۱۴ء) کښې د یورپ اول جنګ عظیم شروع شو - په دے کښې جنګ کښې عثمانی سلطنت (ترکی سلطنت) د انګریزانو برخلاف

د جرمنی او آسټریا په ملګرتیا کښې اودریدلے وو - د انګریزانو د پاره دا موقع ډیره نازکه او خطرناکه وه - لیکن امیر حبیب الله خان د جنګ په اغاز کښې د خپلے غیرجانبدارئ اعلان اوکړو - او دغه شان ئے انګریزان د یو لوئے غم نه خلاص کړل - د امیر حبیب الله خان دا غیر جانبداری دانګریزی حکومت د پاره یو ډیر قیمتی امداد وو - د جنګ په دوران کښې دامیر حبیب په خدمت کښې د جرمنی ، آسټریا او ترکی حکومتونو وفدونه په دے غرض حاضر شول چه امیرحبیب په هند باندے حملے ته اوپاروی - په دے لړکښې جرمنیانو امیر حبیب ته د هرقسم امداد ورکولو وعده اوکړه - د دوئ دا خیال وو چه که په دے موقعه امیر افغانستان په هندوستان حمله اوکړی نو هندوستانی فوځونه چه ټول د ترکی حکومت بر خلاف د یورپ او ایشیا په مختلفو محاذونو جنګیږی هغه به په هندوستان کښې پاتے شی - په افغانستان کښې د بااثره امیرانو او سردارانو یوه ډله داسے هم وه چه هغ به دے موقع په هندوستان باندے د حملے کولو په حق کښې وو - او د هغوی دا خواهش وو چه د دے موقع نه فائده اخستل پکار دی - لیکن امیر حبیب الله خان په هرے خبرے او هرے فائدے د انګریزانو دوستئ ته ترجیح ورکړه - او دا ټول وفدونه اوجړګے ناکامیاب شوے او د دے نتیجه دا شوه چه د هندوستان په مالی او فوځی امداد انګریزانو دا جنګ اوګټلو - او په سنه ۱۹۱۸ کښې ختم شو -

د جنګ د ختمیدو نه پس برطانوی حکومت چه د ترکی حکومت سره کوم سلوک اوکړو هغه ډیر شرمناک او ظالمانه وو - په دے خبره بالعموم ټول مسلمانان ناراض شول او په هندی مسلمانانو کښې بالخصوص د ناراضګئ او بے اطمینانی فضا خوره شوه - په افغانستان کښې هم د ترکانو سره د دے ذلت امیز سلوک په وجه د خلقو زړونو ته درد اورسیدلو - او بے اطمینانی شان خوره شوه - په دے حالاتو کښې ناڅاپه کال سنه ۱۹۱۹ کښې د جلال اباد په علاقه کښې د « کله ګوش » په ښکارګاه کښې امیرحبیب الله خان قتل کړے شو - او قاتل ئے هم معلوم نهٔ شو - د دے قتل اسباب واضح نهٔ دی - یو سبب دا بیانیږی چه امیرمقتول په جامه ، ژوند ژواک او خوراک کښې د مغربی خلقو روش اختیار کړے وو - او د سیاحت هند نه پس د هغهٔ رویه بالکل بدله شوی وه - او په دے وجه په خلقو کښې د هغهٔ برخلاف د ویزارئ جذبات راڅیدلی وو - د هغهٔ د قتل په پس منظر کښې د ترکی جرمن وفد ناکامیابه لیږل هم یو سبب ګڼلے شی - په دغه وخت کښې د افغانستان په پښتنو امیرانو کښې یوه بااقتداره ډله د انګریزانو سره د ډیرو نزدو اوژورو تعلقاتو قائمولو

برخلاف وه. د هغوی دا خیال وو چه د ترکو شکست او د هغوی سره د دې ذلت امیز
سلوک باعث د امیر حبیب الله خان د پالیسۍ نتیجه وه. او دا گمان حقیقت ته نژدې
معلومیږی.

امیر حبیب الله خان د خپل پلار برخلاف یو مدنیت خوښوونکی، نیک خصال او
رحمدل باچا وو. د افغانستان هغه خلق کوم چه د امیر عبد الرحمان د استبدادنه نورو
ملکونو ته تیښتیدلی وو. او یا هغهٔ په خپله د ملک نه خارج کړی وو. هغوی ته ئې بیا
خپل وطن ته د راتلو اجازت ورکړو. او د هغوی مالونه، جائدادونه کوم چه وړاندې
امیر ضبط کړی وو. هغه ئې بیا ورکړل. او د هغوی ئې دلجوئی او دادرسی اوکړه. امیر
حبیب الله خان په محدوده پیمانه د عوامو د تعلیم هم مخالف نهٔ وو. د دهٔ په زمانه
کښې څو ابتدائی سکولونه، شفاخانې او د حربي تعلیم په لړکښې یو کالج په کابل کښې تاسیس
شو. د غه نشان د دهٔ په عهد حکومت کښې د ټک رانګ د پاره د جلال آباد، کابل او
قندهار پورې سړکونه هم جوړ شول. د مسافرانو د ارام و اسائش په غرض ئې په
ټول ملک کښې د هر ښېر کروهه نه پس یو یو سرائې هم آباد کړې وو. د افغانستان
وړومبنی اخبار "سراج الاخبار" هم د دهٔ په عهد حکومت کښې جاری شوې وو. د امیر
حبیب الله خان په زمانه کښې په افغانستان کښې څه داسې لوئې واقع او حادثې هم نهٔ
وې پیښې شوې. او د دهٔ دا تلسو کالو عهد حکومت عموماً په امن و امان او قلاری
تیر شوې وو.

# امیر امان الله خان

د امیر حبیب الله خان د قتلیدو نه پس د هغهٔ ورور سردار نصرالله خان او دهغهٔ مشر ځوی سردار عنایت الله خان په یو وخت دخپل امارت اعلان اوکړو - ولے دیر زر سردار نصرالله خان د سردار عنایت الله خان په حق کښے دست بردار شو - لیکن امان الله خان چه د امیر مقتول دوئم ځوے او په دغه وخت کښے دکابل گورنر وو - دسردار عنایت الله خان د امارت منلو نه انکار اوکړو - دغه وخت دتخت افغانستان دوه ځویدار وو - لیکن د امان الله خان د مرستیالو ډله غالبه شوه او سردار عنایت الله هم د خپلے دعوے نه لاس په سر شو - او د امان الله خان بیعت ئے اوکړو.

د امان الله خان تخت نشینی انگریزانو دخپلو مفادو منافی گڼله - په دے موقعه برطانوی حکومت د دے خبرے انتهائی کوشش اوکړو چه سردار نصرالله خان اویا سردار عنایت الله خان د انگریزی حکومت مرسته قبوله کړی - او د حکومت هند سره سیاسی پناه واخلی - د دے نه وړاندے دانگریزانو داپالیسی وه چه دکابل په تخت به هرڅوک چه ناست وو انگریزی حکومت به د تخت کابل مخالف د شاهی کورنئ یو فرد یا افراد د شاهی قیدی یا سیاسی پناه گزین په حیثیت په دے غرض دخپل ځان سره ساتل چه که چرے امیر کابل دانگریزی حکومت د مرضئ نه خلاف خپله پالیسی اختیار کړی نو دغه وخت به دوئ دغه سیاسی پناه گزین د شاه شطرنج په ډول دخپل فوځی مدد سره د افغانستان د تخت د یو دعوے گیر په حیثیت افغانستان ته اولیږی - او ځنه شان به د دے ملک په کورنو معاملاتو کښے د مداخلت وړ پرانزی - او بیا به د امن و امان قائمولو او د یاهی مفادو په خاطر خپل فوځونه په افغانستان کښے ورد ننه کړی - دا پالیسی د امیر عبدالرحمان تر زمانے پورے کامیابه وه - او دهغهٔ سیاسی رقیبان امیر یعقوب خان او سردار ایوب خان د شاهی قیدیانو په حیثیت انگریزی حکومت د

خپل ځان سره ساتلی وو۔ او ددوئ د موجودګئ په وجه ئے دافغانی حکومت پالیسی د خپلو مفادو او مقاصدو سره هم آهنګ کړی وه ۔ لیکن افغانی مدبرینو ته ددے پالیسئ نقصانونه ظاهرشوی وو۔ او دامیرحبیب الله خان دروپے او پالیسئ په نتیجه کښے د افغانستان په بااقتداره سردارانو کښے ددے پالیسئ رد عمل شروع شوے وو۔ او هغوئ په خپل ملک کښے د خپل سیاسی حریف نه د هر قسم سزا برداشت کولو ته تیار وو۔ ولے د انګریزی حکومت سره ئے سیاسی پناه اخستل غوره نه ګڼل۔ دغه وجه ده چه دامیر امان الله خان دتخت نشینئ نه پس د تخت افغانستان نورو دعوے دارو (سردارنصرالله خان او سردار عنایت الله خان) د انګریزانو سره د سیاسی پناه ګزینئ په نسبت دامان الله خان له خوا هر سلوک دخپل ځان د پاره غوره او ګڼلو ۔ او د انګریزی حکومت هغه زړه پالیسی ئے ناکامیابه کړه ۔ دا دواړه سرداران څه موده د امان الله خان د لوری نه قید وو۔ ولے بیا ازاد کړے شو۔

د افغانستان په تخت د قتل و خون ریزئ نه بغیر ډیر کموکوزو خلقو ته موقع په لاس ورغلی وه۔ دامیرامان الله خان د تخت نشینئ په موقع هم د قتل و خون ریزئ ډیره ویره وه۔ ولے دامیرانو کومه ډله چه د امان الله خان په مرسته ولاړه وه۔ په هغې کښے ډیر قابل افراد هم وو۔ هغوی د امان الله خان د بادشاهئ د اعلان سره سم د فوځیانو تنخواه ګانے زیاتے کړے ۔ انعامونه ئے ورکړل۔ او یو داسے فضائے پیدا کړه چه د اولس د خلقو نه د زوړ امیر د قتل واقعه هیره شوه۔ او د نوی امیر د نوی مقاصدُ سره ئے همدردی راواخسته۔

دامیر امان الله خان د تخت نشینئ په ورځو کښے د هند سیاسی فضا هم ډیره مشوشه وه۔ د جنګ عظیم اول د ختمیدو نه پس هندوستانیانو دهغه خدماتو په بدل کښے کوم چه دوئ د برطانوی حکومت دپاره په جنګ عظیم کښے کړی وو۔ د اصلاحاتو مقابله کوله ۔ ولے انګریزی حکومت د دوئ دمطالباتو نه ډیره بے توجهی اختیار کړه۔ او ددے په بدل کښے ئے ملکی مشران او قامی لیډران په قید و بند کښے واچول۔ د هند ددے سیاسی پریشانئ او ناقلارئ نه افغانستان هم بے خبر وو۔ بل طرف ته په افغانستان کښے هم حالات غیریقینی وو۔ امان الله خان د یو ځلبلانده طبیعت خاوند او د ارادو نه د ډک زړه مالک وو ۔ هغه د هند د سیاسی ناقلارئ او د خپل ملک د غیر یقینی حالاتو په موجودګئ کښے د اراده اوکړه چه یو داسے مهم ته لاس واچوی چه دهغ

په وجه د خپل ملک د اولس او فوځونو توجه د خپلې تخت نشینۍ د بحثونو نه په بل لور اوګرزوی. او د کامیابۍ په صورت کښې په خپل ملک کښې هر دلعزیز شي. چونکه انګریزی حکومت هم د امان الله خان تخت نشیني د خپلو مقاصدو منافي ګڼله. نو په افغانستان باندې ئې د حملې کولو د پاره څه بهانه لټوله. په دې غرض دوئ په صوبه سرحد کښې بې شماره فوځونه جمع کړی وو. او افغانی حکومت ته هم د انګریزانو ارادې پټې نه معلومیدلې

په دې ورځو کښې د افغانی حکومت د برطانوی حکومت سره مقابله کول د عقل په موجب یو د لیونتوب کار وو. انګریزانو هم په دې ورځو کښې د جرمنی غوندې یو طاقتور دشمن مغلوب کړې وو. د برطانوی حکومت د فوځي طاقت او سازو سامان په مقابله کښې د افغانستان غوندې یو بې سرو سامانه ملک جنګیدل د غرهٔ سره د غرې وهل وو. ولې د دې باوجود امان الله خان د خپل اولس او خپلو فوځونو د خیالاتو بدلولو په غرض دې خطرناکې لوبې ته تیار شو. او د انګریزانو برخلاف ئې اعلان جنګ اوکړو. او په دې لړ کښې ئې د ازادو قبائیلو نه هم د جهاد په نامه د مرستې غوښتنه اوکړو.

د افغانستان د اعلان په جواب کښې انګریزی حکومت هم په ۶، مئ سنه ۱۹۱۹ء د افغانستان برخلاف د جنګ اعلان اوکړو. او د اعلان جنګ سره سم په بلوچستان، وزیرستان، مهمند او مالاکنډ غرض په ټولو سرحدی علاقو کښې انګریزی فوځونو حرکت شروع کړو. انګریزانو د اعلان جنګ نه اول په خیبر کښې خپل فوځي استحکامات مضبوط کړی وو. د دغوی دا یقین وو چه د ډکې پورې رسیدلو کښې به د څه مخالفت ویره پیښه نه شي. او هم دغه شان او شوه. د ډکې افغانی فوځي کماندر جرنیل صالح محمد خان د انګریزانو سره د سازش ماتحت د معمولي جنګ نه پس تیښته اوکړه. او انګریزانو په ډکه قبضه اوکړه. او په کابل او جلال آباد ئې د هوائي جهازونو نه بمباری هم اوکړه. ولې په وزیرستان د قبائیلو د لاسه انګریزی فوځونو ته سخت ګړاؤ پیښې شو. د بلوچستان په محاذ هم د افغانی کماندر جرنیل عبدالقدوس خان له خوا کوټې او چمن ته خطره راولاړه شوه. په دې حالاتو کښې د کرمې په محاذ جرنیل نادر خان په ۳۱، مئ په ټل قبضه اوکړه. او دغه شان کوهاټ او پیښور هم په خطره کښې پریوتل. دغه وجه وه چه انګریزی حکومت د حالاتو د نزاکت احساس اوکړو او د عارضي صلح خبرې اترې شروع شوې. او په ۳، جون سنه ۱۹۱۹ء د عارضي صلح اعلان اوشو.

د عارضي صلح د اعلان نه پس په ۲۴، جولائی سنه ۱۹۱۹ء د صلح د شرطونو فیصله کولو په غرض د افغانی حکومت نمائنده جرګه د سردار علی احمد جان په مشرۍ کښې راولپنډۍ ته

راغله - په ۱٦، جولائی د دواړو حکومتونو د وفدونو ترمینځ خبرې اترې شروع شوې. دا خبرې د ۸، اګست پورې جاری وې - او هم په دغه تاریخ د دواړو حکومتو ترمینځ عارضی معاهده اوشوه - د دې معاهدې له مخه افغانستان د انګریزانو د سیاسی اثر ونفوذ نه بیخی آزاد شو - او کوم امداد چه به د انګریزی حکومت له خوا افغانستان ته ورکولے شو - هغه ختم کړے شو - په دې معاهده کښې د افغانستان او هندوستان ترمینځ سرحدی بریدهم هغه ډیورنډ لائن او منلے شو - د دې خبرې په حقله په معاهده کښې دا الفاظ لیکلی دی :-

" افغانی حکومت د هند او افغانستان ترمینځه هغه حدبندی تسلیموی کومه چه سابق امیرحبیب الله خان منلی ده؛ په معاهده د انګریزی حکومت د لوری نه د صوبه سرحد چیف کمشنر سر هملټن ګرانټ او د افغانی حکومت د لوری نه سردار علی احمد جان دستخطونه او کړل - د مستقلے فیصلے او تفصیلی خبرو اترو د پاره شپږ میاشتے پس د یو بل کانفرنس د انعقاد فیصله هم په دې جرګه کښې اوشوه - د افغانستان خلقی په دې معاهده ناراض وو - د دوی د ناراضګئ غټه وجه دا وه چه هغوی د هند او افغانستان ترمینځه د ډیورنډ کرښه " د بیلتون کرښه " نه تسلیموله - دغه وجه وه چه دغوی په خیال کښې سردار علی احمد جان په دې مقابله کښې کامیاب نه وو - د امیر امان الله خان په زړه کښې هم د سردار علی احمد جان په حقله غلط فهمئ پیدا شوې - دغه وجه وه چه نمرکله سردار علی احمد جان د معاهدے کولو نه پس کابل ته راغے نو امان الله خان هغه په خپل کور کښې نظر بند کړو - او هغه د سنه ۱۹۲۱ء پورې نظر بند وو -

په اپریل سنه ۱۹۲۰ء کښې د منصوری په مقام د مستقلے صلح د معاهدے په غرض یو بل کانفرنس منعقد شو - دا ځل د افغانی وفد مشر سردار محمود خان طرزی وو - چه د امان الله خان سخر او په دغه زمانه کښې د افغانستان وزیرخارجه وو - د اجلاس په دوران کښې افغانی وفد د سنه ۱۹۱۹ء د معاهدے د هغه شرط کوم چه د هند او افغانستان د حد بندئ متعلق منلے شوے وو - د ماتولو ډیر کوشش اوکړو - ولے په دې کښې کامیاب نه شو او هغه شرط په خپل حال پاتے شو - د دې شرط په حقله د سنه ۱۹۲۰ء په معاهده کښې دا سے لیکلے شوی دی :-

" دواړه معززه جرګے په یوځله د هند او افغانستان ترمینځ هغه حد بندی تسلیموی کومه چه د ۸، اګست سنه ۱۹۱۹ء د معاهدے په پنځمه دفعه کښې افغانی حکومت منلی وه -"

د افغانستان د دې دریم جنګ نه ډېرې اهمې نتیجې اووتلې - د دې نه پس د افغانستان حکومت د دنیا د نورو ملکونو سره د سیاسي تعلقاتو په قائمولو کښې ازاد شو- چنانچه په فروری سنه ۱۹۲۱ء کښې د حکومت روس او افغانستان ترمینځه یو دوستانه معاهده اوشوه- دا معاهده هغه شان وه څه رنګ چه د حکومت روس او ترکیه ترمینځه وړاندې شوې وه- د دې نه پس امان الله خان د روس په لور زیات مائل شو- او د دې وجه دا وه چه د انګریزانو د جارحیت نه د حفاظت دا یو ښه لاره وه-

په ۱، مارچ سنه ۱۹۲۱ء د افغاني حکومت او ترکیه ترمینځه هم دوستانه معاهده اوشوه- د دې معاهدې په وجه د دواړو دولتونو تعلقات ډېر خواږه شول- په دغه کال په ۲۲، جون حکومت ایران سره هم د افغانستان معاهده اوشوه-

په اپریل سنه ۱۹۲۳ء کښې امان الله خان د دستور اساسي اعلان اوکړو- دا دستور د ترکي دستور په نمونه مرتب شوې وو- امان الله خان د دې خبرې نه ډېر لېواله وو، چه خپل ملک ے د نوی زمانې د تقاضو مطابق په نوی اصولو روان کړي. او دا دستور د هغې اظهار وو- اګر چه په دستور کښې ډېر اختیارات خو دهغه په خپل لاس کښې ساتلې وو- سره د دې قامي مجلس ته د قانون سازۍ څه لږ ډېر اختیارات هم ورکړې شوي وو- د دې دستور د نفاذ نه پس د شاهي فرامینو د اجراء سلسله شروع شوه-

تر څو مره چه د خپل ملک د بهبودۍ او ښېګړې د خواهشاتو او ارادو تعلق وو د امیر امان الله خان په زړه کښې د هغې څه کمې نه وو- دهغه د دې خبرې نه لېواله وو چه خپل ملک ے د ترقۍ په لار په. داسې رفتار روان کړي چه په ډېره لږه موده کښې د دنیا د متمدنو قامونو او ترقي یافته ملکونو سره سیال شي- د دې مقصد د حصول د پاره هغه د هرې وسیلې او ذریعې نه کار واخست- د خپل حکومت د انتظامي شعبو تنظیم ئې د متمدنو ملکونو په ډول اوکړو- د ملک د پاره ئې اساسي قوانین تیار کړل- په ملک کښې د اولس د تعلیم د پاره مدرسې او مکتبونه پرانستل. د ټګ راټګ د ذرائعو اصلاح و تعمیر ته ئې توجه اوکړه- د غلامانو خرید و فروخت ئې قانوناً بند کړو- زراعت او تجارت ته ئې توجه اوکړه- او د دې په حقله ئې نوي نوي منصوبې جاري کړې- د ملک اهم مقامات ئې د سړکونو او ټیلیفون په ذریعه په خپلو کښې اوګنډل- د مطبوعاتو ادارې تاسیس شوې- غرض هغه په ډېرې تن دهۍ او دل سوزۍ د خپل ملک د تعمیر او ترقۍ په کوششونو کښې لګیا وو-

د دنیا د نورو ملکونو سره هغه نه صرف تجارتي او سیاسي تعلقات قائم کړل- بلکه په

د پرشمیر کښې ئې د یورپ ملکونو مثلاً فرانس، جرمنی ، اطالیه ، ترکیه او روس ته د خپل ملک طالب علمان هم په دې غرض اولیږل چه په دې ملکونو کښې د مختلفو علومو فنونو زده کړه حاصله کړی - او د دې په برکت په یوه مختصره عرصه کښې افغانستان د علم و فن د ماهرینو په لړ کښې د پردو د موتاژئ نه خلاص شي . د طالب علمانو نه علاوه به هغه وقتاً فوقتاً د حکومت کارداران او اهلکاران په مختلفو حیلو بهانو غیر ملکونو ته په دې غرض لیږل چه د نورو ترقی یافته او تهذیب یافته ملکونو د سیل و سیاحت په وجه او د نورو ملکونو د خلقو سره د لیدلوکتلو او تعلقاتو په وجه د دوئ ځوانی زاړه خیالات بدل شي . او د نوی زمانې د تهذیب او خیالاتو سره عملاً موافقت اختیار کړی - او د دې ترقی یافته ملکونو په سیالئ کښې دوئ هم د خپل ملک خدمت ته په نوی جوش او نوی ارادو ملا اوتړی -

د امیر امان الله خان دا نظریه بالکل درست وه ځکه چه دغه شان خلق چه به د بهرنو ملکونو د سیاحت نه بیرته راغلل نو د خپلو خانونو سره به ئې د خپل ملک د ترقئ د پاره نوی نوی منصوبې او نوی نوی خیالات هم راوړل - د بهرنو ملکونو سره د تګ راتګ او د بیرونی خلقو افغانستان ته په راتلو که یو طرف ته د ملکی خلقو په خیالاتو کښې په قلاره قلاره تبدیلی پیدا کیدله - نو په بل لورئ د امیر امان الله خان په زړه کښې هم د یورپ د سیاحت ارزو او ولوله پیدا کوله - دغه وجه وه چه د خپل حکومت په اخری کالونو کښې هغه دا خپله اراده څرګنده او بیا پوره هم کړه - او د افغانستان په تاریخ کښې دا وړومبی مثال وو - چه د دې ملک یو بادشاه خپل تخت و تاج د پردو خلقو په حفاظت او ذمه وارئ کښې پریښودلے - او دومره اوږد سفر ته تیار شوے وو - د سفر یورپ د ارزو او تلوسے نه که په یو لور د امان الله خان جرأت څرګندیدلو نو په بل لور د دې نه دا حقیقت هم ظاهریدلو - چه هغه په خپل قام او د خپل حکومت په ذمه وارو حکامو ډیر اعتماد لرلو -

ولے چه په ملک کښې د امان الله خان د سفر یورپ خبرے خورے شوے نو د ملک د زړو خیالاتو خلق په دے ډیر او پاریدل - او په هغوی د دے رنګا رنګ رد عمل اوشو - په تیره تیره چه دوئ دا هم واوریدل چه په دے سفر کښې به د شاه سره " ملکه ثریا " او د شاهی خاندان نور بیګمات هم د یورپ سیل ته رواڼ دی - نو د دے نه خلقو دا خیالات اوکړو چه ګوندے امان الله خان د ملک ټول دولت د ځان سره اخلی - او د خپل ال و عیال سره د افغانستان نه ښئے او باسی - دا خبرے دومره زیاتے شوے چه د حکومت تر غوږ و هم ورسیدلے - او حکومت د دے خبرو ته مجبور شو چه د خلقو د دے غلطو خیالاتو او پروپیګنډے اصلاح

اوکړی. په دے غرض د حکومت دلورې نه خلقو ته ددے سفر فائدے څرګندے کړے شوے او ځاے په ځاے په ملک کښے په ډیر زور سره ددے غلطو خیالاتو تردید ونه او کړے شول. نو ددے نتیجه دا شوه چه بیا به دغه خلق د خوشحالئ نه په جامو کښے نهٔ ځائیدل.[1] او د امان الله خان په وجود او شخصیت به ئے فخر کولو او دا به ئے وئیل چه د امان الله خان غازی په برکت موږ ازاد شو او اوس زموږ ملک اوس هم ددهٔ په برکت په نورو ملکونو کښے اهم ګڼلے شي - او د دنیا خلق زموږ باچا او موږ ته د عزت او احترام په نظر ګوری. د یورپ مختلفو ملکونو او حکومتونو د هغهٔ د سفر یورپ اراده نه په خبریدو چه په کوم شوق، مینه او احترام هغهٔ ته د خپلو خپلو ملکونو د دورے دعوت ورکړے وو. د هغې په وجه په هندوستان کښے هم امان الله خان ډیر مقبولیت موندلے وو. بالخصوص هندی مسلمانان په هغې ډیر خوشحال وو. د امان الله خان سره د هندی مسلمانانو د عقیدت او اخلاص اظهار ددے شعر نه کیږی. ؎

*چو مسلم علم دین ورزید فخر الدین رازی شد    ولے چوں درعمل کوشید امان اللہ غازی شد*

غرض نهٔ صرف په افغانستان کښے بلکه په هندوستان کښے هم د امان الله خان د سفر یورپ خبرے ګرمے وے. او څومره چه به ددے سفر وخت را نزدو کیدهٔ هغومره به په قیاس ارائیو کښے هم زیاتے کیدلو. دا قیاسونه به رنګا رنګ وو. او اکثر به په بعید از قیاس خوش فهمیانو مبنی وو. اګر چه څنې واقف کار او دوراندیش خلقو د شاه ددے دورے سره خوشګوار تعلقات نهٔ وو وابسته کړی. ولے دا حقیقت دے چه امان الله خان په خپله هم د یورپ سفر ته ډیر لیواله وو. او د دنیا نور حکومتونه هم د هغهٔ ملاقات ته په مینه کښے وو. لیکن څه رنګ چه د واقعاتو نه ثابته شوه. دا دوره نه د شاه امان الله خان د خپل ذات دپاره مفید شوه. او نهٔ د افغانستان د پاره.

د یورپ په سفر د روانیدو نه اول چه شاه امان الله خان د خپل حکومت د وزیرانو او حاکمانو په وړاندے په کابل کښے کوم تقریر کړے وو د هغې نه دا صفا معلومیږی چه شاه امان الله خان د یورپ د مادی ترقیاتو نه ډیر متأثر وو. او د هغهٔ دا لویه ارزو وه چه هغه هم خپل ملک ددے ترقی یافته ملکونو په قطار کښے اودروی. هغهٔ په خپل تقریر کښے دا وئیلی وو :-

" د خدائے پاک په مدد، د قام په مرسته او ددے خادم دین د کوششونو په وجه

[1] اخبار زمیندار ۱۱ ر دسمبر ۱۹۲۷ء

د افغانستان د خپلې ازادۍ په سیورې کښې « سکون وجمود » د همیش د پاره پرېښودلے دے. او د موجوده زمانې د متمدنه او ژوندو قامونو په صف کښې اودرېدلے دے. او د احرکت او فعالیت چه د ازادۍ روح دے په هغه صورت کښې قائم پاتے کېدے شي چه موږ د دے زمانې په تمدنی ترقیاتو کښې ورځ په ورځ زیاتے نه زیاته حصه واخلو. د حریت او استقلال په تېرو اتو کالونو کښې ضروری آئین و قوانین وضع شوی او په ملک کښې جاری شوی دی. موږ په خپله د ملک د مختلفو اطرافو په دوره کښې دا ملاحظه کړل. چه په دے قوانینو باندے برابر عمل روان دے کېږی. او موږ د خپل ملک د اولس د اندرونی حالاتو نه خبردارے حاصل کړو.

د ملک د ضروری اصلاح او تنظیم د اهم کار نه چه موږ فارغ شو نو دا موعوره اوګڼله چه د یورپ سفر اوکړو. ځکه چه د یورپ د حیات اجتماعی او طورطریقو نه موږ ډیر متأثر شوی یو او ګیا دے کیږو. نو دا به ښه وی چه هلته په خپلو سترګو د حالاتو ژوره مطالعه اوکړو. او د هغه ملکونو هغه څیزونه چه د هغې وجود د متمدن ملکونو د پاره ضروری وی. هغه په خپل ملک کښې موږ هم جاری کړو. چنانچه اکثرو لویو لویو بادشاهانو د نورو ملکونو سفرے کړی دی. او د هغه ملکونو د تمدنی حالاتو مطالعه ئے دا ستفادے په غرض کړی ده. دغه وجه ده چه موږ هم د سفر یورپ اراده کړی ده. او کوم وخت چه زموږ د دے ارادے نه د یورپ سلطنتونه خبرشول نو هغوی موږ ته د خپل خپل ملک د دورے دعوت راکړو.»

«اوس موږ د سفراراده کړی ده. ستاسو د پاره دا ضروری ده چه د ملک په انتظام او انصرام کښې د غورو فکر او ډیر احتیاط نه کار واخلئ او څوک په چا باندے ظلم کولو ته پرے نږدئ. د مایدولت وکالت او د امور خارجه وکالت به زموږ تر راتلو پورے د ولی محمد خان وزیر حربیه په لاس کښې وی. په کومو احکامو چه زموږ د دستخطو نه حاصلول ضروری وی هغه دِ دَ وکیل مذکور په خدمت کښې پیش کیږی. د روانیدو ورځ لا مقرره شوی نه وه. د لیندے (قوس) په اوله نیمه کښې به موږ (انشاء الله) روانیږو. موږ به د کابل نه قندهار ته او د هغه ځائے نه به د چمن په لار بمبئ ته او د بمبئ نه به یورپ ته روانیږو. او د مصر نه به اطالیه ته رسو او بیا به د یورپ د ملکونو سیاحت کوو.[1]

د روانیدو نه اول زموږ دا خواهش وو چه د خپل خوږ قام سره اووینو او رخصت ترینه واخلو. ولے دا خبره اوس ممکنه نه ده. زموږ د نقل و حرکت اطلاع به وزارت دربار شائع کوی.

---

[1] اتحاد مشرق افغانستان - په حواله د اخبار زمیندار لاهور ۱۱ نومبر سنه ۱۹۲۷ء

عرض[1] د ۱۹۲۸ء په اغاز کښې شاه امان الله خان د ډېرو ارادو او تلوسو سره د يورپ په سفر روان شو - په دے سفر کښې د ملکه ثريا ء او نورو شاهي بېگماتو او اميرانو نه علاوه سردار علی احمد جان هم شامل وو - دا سردار امان الله خان په خپل خيال کښې د تخت کابل د پاره خپل رقيب گڼلو - او په دهٔ بدگمانه وو - او ځکه ئے دے د ځان سره يورپ ته بوتلے وو - چه وروستو د بغاوت څه خطره نهٔ وی - ولے د دے احتياط باوجود د مستقبل په پردوکښے داسے واقعات پټ وو چه دا تدبيرونه او احتياطونه ټول عبث شول -

امان الله خان لا په يورپ کښې وو چه د هغهٔ د مصر او انګلستان د سياحت د فلمونو نمائش د کابل ښار په مرکزی سينما کښې شروع شو - د دے فلمونو په ليدو چه به د افغانستان خلقو د امان الله خان د ذات سره د کوم والهانه محبت او جوش اظهار کولو - د هغې بيان په الفاظو کښې گران دے - د غه وخت د چا په خوا خاطر کښې هم دا خبره نهٔ تيريدله - چه کال به لا تير شوے نهٔ وی چه دا فغانستان دغه محبوب بادشاه به هم د دے خپلو خلقو د لاسه د خپل وطن نه په همېشه تللو مجبور شي - د انګلستان د دورے په وخت کښې د امان الله خان استقبال په ډېرے شاندارے طريقے شوے وو - او د قيام انګلستان په وخت کښې د برطانيې وزيراعظم شاه ته د نورو خبرو نه علاوه دا هم وئيلی وو چه برطانوی حکومت د افغانستان هر قسم امداد او دوستئ ته تيار دے - بادشاه ته پکار دی چه هغه د روس دوره منسوخ کړی - ليکن امان الله خان دا مشوره قبوله نهٔ کړه - برطانوی حکومت اشارتاً هغهٔ ته دا هم وئيلی وو چه د هغهٔ په غير حاضرئ کښې په افغانستان کښې د هغهٔ برخلاف د سازشونو او فسادونو جال خوريدونکے دے - مګر په دے خبرو د امان الله خان هيڅ غوږ او نهٔ کړيلو - د هغهٔ په دماغ کښې دا خبره ناسته وه چه که چرے دشمن په افغانستان حمله اوکړه نو هغهٔ د خپل ملک په اولس کښې دومره مقبوليت موندلے دے چه د ملک اولس به د هغهٔ د پاره ځپلے وينے توئے کړی - دا درسته ده چه د افغانستان په اولس کښې امان الله خان ډير مقبوليت حاصل کړے وو - ليکن دا د هغهٔ خوش فهمی وه - هغهٔ ته د بيرونی دشمن خطره نهٔ وه - بلکه د خپل ملک دننه د کورنو بغاوتونو خطره وه - او هغه د خپل ملک د اولس د ذهنيت په باب کښې په غلط فهمئ کښې پروت وو - د افغانستان د انقلاب په دوران کښې اګرچه تر اخره وخته د حکومت برطانيه همدردی په ظاهره کښې د امان الله خان سره وه ولے

---

[1] امان الله خان د جنورئ نه د جولائ پورے د يورپ په سياحت کښې مشغول وو -

د اکثرو خلقو د حالاتو او قرائینو په بنا دا خیال وو چه په دے سازشونو کښے درپرده د انګریزی حکومت لاس وو - او ددے وجه د روس او برطانیځ ترمینځه هم دغه څوانے سیاسی رقابت وو - ځکه چه امان الله خان دبرطانوی حکومت په نسبت دحکومت روس سره د تعلقاتو قیام ته ډیر مائل وو -

امان الله خان هسے هم د یورپ د مادی ترقیاتو نه ډیر متاثر وو - او د یورپ سیاحت هم دغهٔ په دل ودماغ یو عظیم اثر اوکړو - د دے سفر د هغهٔ په خیالاتو کښے یو عظیم الشانتبدیلی پیدا کړه - د دے نه پس به هغه د خپل ملک معاملاتو او مسائیلو ته په یو نوی نظر کتل - د یورپ حکومتونو چه په کوم انداز او شان کښے د هغهٔ عزت او استقبالونه کړی وو - او د هغ چه کوم اثر د امان الله خان په ذات شوے وو - د هغ قدرتی نتیجه دا شوه چه هغه د خپلے راځ د پختګئ او خپلے دانشمندئ زیات مدعی شو - د خپل ملک د ترقئ او لوړتیا په باب کښے چه د هغهٔ په ذهن کښے کوم منصوبے وے اوس د هغهٔ په نظر کښے هغو ناقابل ترمیم حیثیت اختیار کړو - د یورپ د راتلو نه پس چه په مختلفو موقعو هغهٔ کوم تقریرونه کړی وو - د هغو نه د هغهٔ اراده ځرګندے معلومیدلے - په وزارت خارجه کښے د یو تقریر په دوران کښے هغهٔ د خپل ځان په باب کښے دا وئیلی وو چه هغه یو انقلابی بادشاه دے - او په دے بنا د خپل ملک د اصلاحاتو مهم به هم په انقلابی کوششونو سر ته رسوی - د غه شان په وزارت حربیه کښے د ځلمو افسرانو په وړاندے هغهٔ په خپل یو تقریر کښے داسے وئیلی وو چه په ملک کښے زهٔ کوم انقلاب راوستل غواړم که چرے ضرورت شی نو هغه به ستاسو د سنګینونو په زور راوستلے شی - د دے نه علاوه دملک د مذهبی طبق په مقله هم د هغهٔ په خیالاتو کښے ډیره تبدیلی راغلی وه - دا خلق هغهٔ د خپل ملک د معاشرتی او ذهنی ترقئ په لارکښے یو لوے بندیزګڼلو - او په دے غرض هغهٔ د دے خلقو د اثر و نفوذ په کمولو او زور و قوت ختمولو کښے هم ټکیا شوے وو -

د یورپ نه د راتلو نه پس د امان الله خان د حکومت لس کاله پوره شوی او ډیرزد یوولسم کال شروع کیدونکے وو - د هغهٔ دا اراده وه چه د راتلونکی جشن استقلال نه پس سمدستی د اصلاحاتو نوے دور شروع کړی او د دے دور نامه " دورجدید " یا " دور ثانی " کیښودلے شی - د هغهٔ دا خواهش هم وو چه د هغهٔ حکومت د دنیا د نورو حکومتونو په نظر کښے یو آئینی حکومت ښکاره شی - د دے مقصد د حصول په غرض هغهٔ دا غوره اوګڼله چه د اصلاحاتو د جاری کولو نه اول اول د لوئے جرګے ( قامی پارلیمنټ ) ارکانو سره په دے اصلاحاتو

بحث مباحثه اوکړی. او د قام مشرانو ته د دے نوی اصلاحاتو فوائد څرګند کړی. او په دے ډول د دے مشرانو په واسطه د ټول قام مرسته او تعاون حاصل کړی.

د لوے جرګے (قامی پارلیمنټ) د رابلنے رواج هم امان الله خان په خپل عهد حکومت کښے شروع کړے وو. د دے جرګے ضرورت هغه د منګلو د بغاوت په موقع (سن ۱۹۲۴ء) محسوس کړے وو. د منګلو د بغاوت مرکز خوست وو. او "ګوډ ملا"[له] یو مذهبی عالم د دے بغاوت مشر وو. د دے بغاوت وجه دا وه چه امان الله خان چه د خپل ملک د پاره کوم نظامنامه تیاره کړی وه. په هغې کښے څنے دفعات داسے هم وو چه هغه د مذهبی عالمانو په خیال د اسلامی شریعت سره متصادم کیدل. په دے بنا دے عالمانو د دے دفعاتو برخلاف اولس اوپارولو. او په سمت جنوبی کښے یو عام بغاوت اوشو. او د دے خبرے خطره پیدا شوه چه هسے نه دا بغاوت د ملک نورو حصو ته هم اورسی. او حکومت سقوط اوموی. چنانچه امان الله خان عین هم د بغاوت د شدت په دوران کښے د ټول ملک مقتدر اشخاص کابل ته راوبلل او د هغوی په وړاندے ئے هغه نظامنامه په دے غرض کیښوده چه دوئ په کښے مناسب ترمیم او تنسیخ اوکړی. او بیا ټول ملک د بغاوت د ختمولو د پاره د حکومت سره په اتفاق ملا اوتړی. په دے موقعه دا اعلان هم شوے وو چه هر درے کاله پس به لویه جرګه کابل ته رابللے شی. او په دے کښے به د حکومت په ګزشته او آئنده پالیسو بحث مباحثه کیږی. په دے غرض چه د ملک په اولس باندے د خپلو مشرانو او نمائندګانو په صلاح مشوره د حکومت قوانین اجراء شی. د منګلو دا بغاوت قریباً یو نیم کال جاری وو. او اخر د نائب سپه سالار سردار شاه ولی خان په قابلیت او همت ختم کړے شو. د دے بغاوت د فتح په یادګار کښے د کابل (په ده مزنګ) کښے د "علم و جهل" په نامه یو یادګار هم قائم کړے شو.

غرض د نوی دور د اصلاحاتو د جاری کولو نه اول د صوبو د حکومتونو په مشوره د ملک د مختلفو عناصرونه د لوے جرګے د پاره ممبران نامزد کړے شول. او هغوی کابل ته راوبللے شول. د دے ممبرانو د قدر افزایئ او عزت افزایئ د پاره غیر معمولی انتظامات شوی وو. او د دے نه د امان الله خان دا مقصد وو. چه د ملت په دے نمائندګانو کښے یو داسے ولوله پیدا کړی چه هغوی د بادشاه د نوی خیالاتو او نوی اصلاحاتو سره اتفاق اوکړی ولے دا مقصد بیخی حاصل نه شو. او د دے دوه څنے وجې وے. یوه وجه خو دا

---

له نامه ئے عبدالله وه. او په "ګوډ ملا" مشهور وو.

وه چه دے نماٸندګانو چه د کابل د قیام په دوران کښے د زنانهٔ و د بے پردګۍ او د مغربي طرز تمدن (با لخصوص د شاهي خاندان په افرادو کښے ) کوم مظاهرے اولیدلے ـ د هغه نه د دے خلقو په ذهن یو عجیبه مخالفانه اثر اوشو ـ او د دے نتیجه دا شوه چه هر څومره به د دے نماٸندګانو خوشامند ے کیدلے ـ او د دوئ د ارام و آسائش په باب کښے به حد په هورته کوششونه کیدل ـ هغومره به د دوئ په زړونو کښے د بادشاه د لامذهبیت او دهریت شکوک و شبهات پیدا کیدل ـ د دے نوی اصلاحاتو په باب کښے د شکوکو و شبهاتو د پیدا کیدو بله وجه د حکومت د خپلو وزیرانو رویه وه ـ دا وزیران په زړونو کښے د امان الله خان نه ناراض وو ـ او دا ئے نه غوښتله ـ چه امان الله خان دِ په خپل مقصد کښے کامیاب شی ـ ولے د خپل خفګان د بدل اخستلو د پاره چه دے وزیرانو کومه طریقه اختیار کړی وه هغه ډیره خطرناکه وه ـ او دے وزیرانو د هغ په خوفناک انجام غور نهٔ وو کړے ـ د دوئ دا رویه یوا ځے د امان الله خان د تباهۍ او بربادۍ باعث نهٔ وو ـ بلکه دوئ په کښے په خپله هم تباه کیدل ـ او د خپل ملک تباهی ئے هم کوله ـ ولے افسوس دے چه دملت په نماٸندګانو کښے د امان الله خان برخلاف د غلطے پر و پیګنډے په هولناک انجام دوئ فکر نهٔ وو کړے ـ او دا ئے هسے یو توقع کړله ـ دوئ د خپل ذاتی اقتدار او خودغرضۍ په بنا د بادشاه سره یو سیاسی جنګ شروع کړے وو ـ او د هغ د انجام نه ناخبره وو ـ

د امان الله خان سره د خپلو وزیرانو د مخالفت او خفګان یو وجه خو دا وه چه هغه د سفر ـ یورپ د تلو ـ په موقع د خپل نائب په ډول ولی محمد خان وزیر حربیه مقرر کړے وو ـ دا سړے د امیر حبیب الله خان یو غلام بچه او د ترکستان باشنده وو ـ او دا اصل نه پښتون نهٔ وو ـ په دے تقرری د بادشاه د خاندان امیران او سرداران هم خفه وو ـ او په حکومت کښے چه کوم نور درانی سرداران وو ـ هغوی پرِ هم ناراض وو ـ او دا ئے په خپل ځان باندے د امان الله خان له خوا بے اعتمادی او خپله حق تلفی ګڼلی وه ـ د خپلے کابینے او امان الله خان ترمینځه د مخالفت بله وجه دا وه چه هرکله امان الله خان د یورپ د سفر نه بیرته راغلو نو هغهٔ په خپل ملک کښے یو ذمه وار او آئینی حکومت قائمولو په غرض د وزارت عظمیٰ د یو نوی عهدے قائمولو فیصله اوکړه ـ د وزارت عظمیٰ د پاره په زړه وزیرانو کښے هر یو وزیر خپل ځان مستحق ګڼلو ـ او د دے په طمع وو ـ ولے امان الله خان د دے عهدے د پاره یو داسے سړے خوښ کړو چه هغه د دے لوئے عهدے د ذمه واریانو اوچتولو د پاره نهٔ موزون وو او نه مستحق ـ دا سړے د « مجلس شوریٰ ملی صدر »

شیر احمد خان وو۔ دا سړے امان الله خان په دے وجه خوښ کړے وو۔ چه دے به د دے خپل لوځ عزت او قدر افزایئ د پاره د هغهٔ زیر احسان وی۔ او د هغهٔ په خبره کښے به هیځ چون وچرا نهٔ کوی۔ ولے په دے تقرریٔ د امان الله خان زاړهٔ وزیران ډیر ناراض او غصه شول چه تهولو چنل اختلافات بیخی هیرکړل۔ په خپلو کښے ئے اتفاق اوکړو۔ او د ،،ولی محمد خان وزیرحربیه،، په مشریٔ کښے ئے د خپل خپل وزارت نه استعفیٰ کانے ورکړے۔ بادشاه د خپلو وزیرانو د رضا کولو ډیر کوشش اوکړو۔ لیکن دے وزیرانو د شیر احمد خان په ماتحتیٔ کښے دهغهٔ سره په یوه کابینه کښے د کار کولو نه بیخی انکار اوکړو۔ او اخر امان الله خان دے خبرے ته مجبور شو چه د شیر احمد خان تقرری خوځ منسوخه کړه ولے د ملک د اولنی وزارت عظمیٰ عهده ئے د خپل ځان سره اوساتله۔ او بل وزیر ئے مقرر نهٔ کړو۔ په دے خبره اگرچه زړو وزیرانو خپلے خپلے استعفیٰ کانے بیرته واخستلے ولے د بادشاه او وزیرانو په زړونو کښے چه کوم خیرے پیدا شوے وو۔ هغه لرے نهٔ شو۔ هر یو فریق د بدل اخستلو۔ اراده کړی وه۔ حقیقت دا دے چه په دے اختلاف کښے دواړه فریقه (بادشاه او وزیران) حق بجانب نهٔ وو۔ امان الله خان ته هم دا نهٔ وو پکار چه هغهٔ د وزارت عظمیٰ د پاره د بهرنه یو سړے خوښ کړو۔ بلکه مناسب دا وو چه د دے اهم منصب د پاره ئے په خپلو وزیرانو کښے یو وزیر خوښ کړے وے۔ او د دے د پاره موزون سړے هم ولی محمد خان وزیرحربیه کیدے شو۔ دے سړی د امان الله خان په غیر حاضریٔ کښے د افغانستان د حکومت انتظام په ډیرے دیانتداریٔ او جانفشانیٔ کړے وو۔ او خپل ځان ئے د لوځ نه لوځ ذمه واریٔ د سنبالولو اهل ثابت کړے وو۔ د داسے سړی د حق تلفیٔ نتیجه ډیره خوفناکه وه۔ او د هغځ نتائج ډیر زر څرګند شول۔ بل طرف ته دے وزیرانو چه د امان الله خان نه د بدل اخستلو د پاره کومه طریقه اختیار کړی وه۔ هغه د دویٔ د خام خیالیٔ یو لوځ ثبوت وو۔ که چرے دویٔ د بادشاه د اصلاحاتو برخلاف د اولس د ذړانو په زړونو کښے د شکوکو پیدا کولو په انجام غور کړے وے نو دویٔ به داسے خطرناک کارته نهٔ وو تیار شوی۔ ولے هغه وخت دویٔ دا هسے یو توقع کړله۔ خو په حقیقت کښے د ملک د تباهیٔ په لار روان وو۔

به هر حال د لوځ جرګے د راغو نښتلو نه چه کوم مقصد وو هغه حقیقتاً حاصل نهٔ شو بلکه د ملک د تباهیٔ باعث هم دغه جرګه شوه۔ د دے جرګے د قیام په ورځو کښے د ،، وکلاځ ملت او وزراځ حکومت،، ترمینځه د بادشاه د اصلاحاتو او د هغهٔ د ارادو

برخلاف سازشونه مکمل شول. ددې نه علاوه چه داولس دے نمائندګانو دکابل د استوګنې په وخت کښې کوم حالات په خپلو سترګو لیدلی وو. دهغې نه هم دوئی دآئنده اصلاحاتو حاج امستلے شو. دے وزیرانو یوبل ظلم داکړے وو چه داولس نمائندګانو ته دوئی دامشوره ورکړی وه چه دجرګې په وخت کښې دبادشاه دیو تجویز اومنصوبے مخالفت کول پکار نهٔ دی. بلکه په ظاهره کښې داسے رویه اختیارول پکاردی. چه دهغې نه دبادشاه دهرے خبرے مرسته او حمایت معلومیږی. ولے کوم وخت چه په هغې تجویز یامنصوبے دعمل کولو وخت راشی نو هغه وخت دوزیرانو هدایاتو ته انتظارکول پکار دی. ددے فیصلے په رنړا کښې دلوئے جرګې اجلاسونه ختم شول او څه وخت چه داولس دانمائندګان خپلو خپلو علاقو ته اورسیدل نو ددوئی په زړونو کښې دامان الله خان په حقله دهغهٔ دبے دینئ دخیالاتو او دهغهٔ دمجوزه اصلاحاتو داجراء کیدو په صورت کښې چه دوئی په خپل ذهن کښې کوم اثرات مرتب کړی وو. په سختئ سره ځانے نیولے وو. اودے نتیجه داشوه چه په لږه وخت کښې په ټول ملک کښې دامان الله خان دبے دینئ افسانے خورے شوے. او په اولس کښې دمذهب دحفاظت په نامه یو داسے لوئے هیجان پیدا شو چه دحکومت برخلاف هراقدام ته ئے خلق تیار کړل.

دافغانستان ددےخونړی اوتباه کن انقلاب غټه وجه هم داوه چه امان الله خان دیورپ نه دراتلو نه پس دخپل ملک دترقئ په خواهش کښې دډیرے جلد بازئ او تلوار نه کار واخست. دهغهٔ داراده وه چه په تلی کښې سرشم زرغون کړی او دبدقسمتئ نهٔ ئے داصلاحاتو هغه حصه اول شروع کړه چه دهغې تعلق داولس دتمدن، اخلاقیاتو او اعتقاداتو سره وو. اوس که چرے داغبره ربښتیا وی چه په دنیا کښې دخیالاتو حکمرانی ده نو بیا به دانتیجه اخذ کول هم خلاف عقل نه وی چه امان الله خان دنوی خیالاتو طاقتونه لا وسیع کړی او منظم کړی نهٔ وو. او دزړو خیالاتو په مضبوطو قلاګانو ئے حملے شروع کړے. اودهغې نه چه کوم نتیجے اووتلے هغه دنیا اولیدلے. دجهالت اوګمراهئ علاج په توره اوطاقت ناممکن دے. دا په علم او صرف دعلم په طاقت ممکن کیدے شی.

په دے ورځو کښې په افغانستان کښې نوے تعلیم لا په عمومیت سره خور شوے نهٔ وو. او په دے لړکښې چه څومره کوششونه تردے وخته شوی وو هغه کافی نهٔ وو. ولے چونکه مسلسل ترقی کیدله نو په مستقبل قریب کښې ددے کوششونو نه دښو او فائده مندو اثراتو دمرتب کیدلو توقع کیدے شوه. که چرے دااصلاحات څوکاله پس هغه وخت اجرا

شوے وے چه په خپلو خلقو کښے د دے د اهمیت او قدرو قیمت پیژندلو شعور پیدا شوے وے نو یقیناً شاه امان الله خان به په خپلو مقاصدو کښے کامیاب شوے وو - ځکه چه په ملک کښے د نوی تعلیم په منصوبو به ډیره تندئ او تیزئ کارکیدلو - او د دے لازمی نتیجه به دا وه چه د عام اولس دماغی قوتونه به مضبوط شوی او روښانه شوی وو - او د زړو خیالاتو او توهماتو تیرے به لرے شوے وے - په هغوی کښے به د غور و فکر عادتونه پیدا شوی وو - په جاهلانه رسمونو ټینګیدل او اودریدل به په قلاره قلاره کم شوی او ورک شوی وو - په بل لور د طالب علمانو هغه ټولګی چه یورپ ته به د تعلیم په غرض لیږلے شول هغوی چه به بیرته راغلل نو د ځان سره به ئے د حریت او مساوات جذبات او نوی نوی خیالات هم راوړل - او د دوئ د دے نوی خیالاتو نه به د اولس خلق هم متاثر کیدل - او د دے په نتیجه کښے به د نوی اصلاحاتو د پاره په غیر محسوس طریقه زمکه هواریدله -

د نوی اصلاحاتو د پاره د فضا په هوارولو کښے خارجی اثرات هم یو مؤثر عامل ثابتیدے شو - د بیرونی ملکونو د خلقو په راتلو او د ملکی خلقو سره د هغوی په خلط ملط کیدو سره هم د ملکی په خیالاتو او تمدن کښے څه نه څه فرق راغلے وو - د دے نه علاوه د ملک د ترقئ په لړ کښے چه کوم منصوبے رواج وے لکه د ټک راټک د وسیلو درستئ، د نوی نوی سړکونو تعمیر، د صنعت و حرفت په لړ کښے د کارخانو اودرول، زراعتی ترقی، دا و به هر منصوبے او دا سے نور په سوونو زرګونو کارونه داسے وسیلے وے چه د هغې په تکمیل سره به په خپله غیر محسوس طریقه د خلقو د ژوند په لارو چارو او خیالاتو کښے تبدیلی واقع کیدله - د خلقو د ژوند معیار به اوچتیدلو - بے کاری او بے روزګاری به په قلاره قلاره کمیدله - ملک به د اقتصادی ترقئ او خوشحالئ په لور روان وو - غرض که یو څو کاله په امن وامان تیر شوے وے نو د افغانستان نه به یقیناً د مینځنئ ایشیا یو ترقی یافته ملک جوړ شوے وو -

په دے کښے شک نشته چه غازی امان الله خان د خپل ملک یو لوئ محب وطن بادشاه وو - هغه په دیانتدارئ سره د خپل ملک د ترقئ په کوششونو کښے لګیا وو - د هغه دا خواهش وو چه خپل ملک ے په ډیره لږه موده کښے د ترقئ په بام او خیژولے - په دے لړ کښے هغه بے اندازے کوششونه کړی وو - او کول ئے - ولے افسوس د دے چه هغه خپل کوششونه هم په خپله عبث کړل - که چرے هغه د خپل ملک او قام حالاتو ته په ژور نظر کتلے وے - د

خپل ملک د تاریخ مطالعه ئې په غور و فکر کړې وې او د خپل اولس د نفسیاتو نه ئې ځان خبر ساتلې وې نو یقیناً هغه به د اصلاحاتو په اجراء کښې دومره جلد بازئ نه کار نۀ وو اخستې. هغۀ ته پکار وو چه د هغۀ په خپل عهد حکومت کښې چه د هغۀ ملک په تجارتی، صنعتی او مالیاتی لحاظ سره څومره ترقی کړې وه. د اولس په ذهنونو به ئې د دې ترقئ اثرات مطالعه کړی وو. او د اولس په مذهبی او سماجی ژوند کښې به ئې د مداخلت نه پرهیز کړې وې. او که چرې هغۀ داسې کړې وې نو په ډیره لږه موده کښې به هغۀ دا حقیقت څرګند لیدلې وو چه د هغۀ ملک د هغۀ د خواهشاتو مطابق د ترقئ په لار به تیزئ روان دې.

**د انقلاب آغاز:-** د افغانستان د دې انقلاب د پاره زمکه خود ډیرې مودې نه تیاره شوی وه. او د دې وجه د اصلاحاتو په نفاذ کښې د امان الله خان بې ځایه جلد بازی وه. ولې د انقلاب ابتدا د شینوارو قبیلې د بغاوت نه اوشوه. او دا هغه ورځ وه چه په دې ورځ د افغانستان جینکئ یورپ ته د مغربی تعلیم د حصول په غرض لیږلې شوې. سازش داسې شوې وو چه په څه طریقه دِ دا جینکئ د یورپ د لیږلو نه پاتې کړې شی. په دې سازش کښې د امان الله خان خپل وزیران او څنې نور کسان هم شامل وو. کوم چه د خپلو لونړو یا خوئیندو د یورپ په استولو ناراض وو. ولې د امان الله خان د ناراضګئ د ویرې خاموش وو. په دې غرض د شینوارو د څنې خلقو سره د وړاندې نه د اصلاح شوی وه او دا تجویز شوې وو چه کوم وخت دا جینکئ د کابل نه په موټرونو کښې روانې شی نو هغه وخت به شینوارو ته خبر ورکړې شی او د شینوارو یو مسلح ټولې به د جلال آباد او ډکې تر مینځه د جینکو دا موټرونه راګیر کړی. او جینکئ به په خپله قبضه کښې اوساتی. او بیا به د خبرو اترو په ذریعه په بادشاه دا خبره واضحه کړې شی چه پردو ملکونو ته د جینکو په لیږلو قام ناراض دې. او دا کار پرې بندول پکار دی. او دغه شان به خبره روغه شی.

د تجویز مطابق چه کوم وخت دا جینکئ د کابل نه په موټرونو کښې روانې شوې نو د شینوارو هغه خلقو ته په ټیلیفون خبر ورکړې شو. ولې د بد قسمتئ نه کوم سړی چه د دې کار د پاره مقرر شوی وو هغوی چه سړک ته رااورسیدل نو د غه وخت د جینکو هغه موټرونه وړاندې تیر شوی وو. او دا خلق چه په کومه اراده راغلی وو. په هغې کښې کامیاب نۀ شو. او په دې خپلې ناکامئ ډیر غصه شول. او د خود نه اووتل. د غه ناکامیابه او د جوش نه ډک خلق چه خپلې قبیلې ته اورسیدل نو په خلقو کښې ئې یولوئې الغاؤ تلغاؤ جوړ کړو. په ټوله قبیله کښې د حکومت د دې اقدام برخلاف جذبات اوپاریدل. ملایانو په مذهبی لحاظ

سره دحکومت د دے اقدام مخالفت اوکړو ـ د قبیلے خانان اوملکان هم د عواموملګری شول ـ اوټولو د حکومت برخلاف ملا او تړله ـ فوځیانو ته هم د دے خبرے بوئ اولسید نو هغوی هم د اولس ملګری شول ـ او د شینوارو د سرحدی علاقے چاونۍ ئے لوټ کړه ـ او د باقاعده بغاوت اعلان ئے اوکړو ـ د دے باغیانو اوس د حکومت په نورو ټاپونو هم حملے شروع کړے ـ تر دے چه د کابل لاره ئے هم بنده کړه او د جلال آباد د نیولو اراده ئے اوکړه ـ حکومت ته چه د دے واقعاتو اطلاع اورسیدله نو حکومت دا غوره اوګڼله چه د فوځی اقداماتو سره سره د روغے جاړے او صلحے صلاحیت د پاره هم کوشش پکار دے ـ

د یاغی قبیلے سره د خبرو اترو کولو په غرض چه کوم حاکم او لیږلے شو د هغه نه دا معلومیږی چه حکومت د خپل طاقت په نشه کښے د دے بغاوت ته هیڅ څه اهمیت نهٔ وو ورکړے ـ او دائے یو معمولی واقعه ګڼلی وه ـ ولے په حقیقت کښے دا د حکومت لویه غلطی وه ـ د شینوارو سره د صلحے کار امان الله خان سردار شیراحمد خان ته حواله کړو ـ دا هغه سړے وو چه امان الله خان ورله د وزارت عظمیٰ عهده ورکوله ـ او په دے خبره د خپلو وزیرانو سره د بادشاه لوئے تصادم راغلے وو ـ په دے موقع د دے سردار په لیږلوکښے د امان الله خان دا مقصد وو چه د کامیابئ په صورت کښے به په نورو سردارانو د دهٔ فوقیت څرګند شی ـ او دغه شان به د بادشاه د نظر انتخاب درستی ثابته شی ـ ولے دا سردار هسے د نوم سردار وو ـ او د سیاست او دور اندیشئ د صفاتو نه ئے معمولی برخه هم نهٔ لرله ـ پکار خو داسے وه چه په دے نازکه موقع دهٔ د تدبر او عقل نه کار اخستے وے او په ټَل اور ئے اوبهٔ اچولے وے ـ د یاغی پښتنو جذبات ئے په مختلفو حیلو حوالو ساړه کړے وے ـ دهٔ په جرګه کښے په پښتنو د پکے شروع کړے ـ او شینوارو ته ئے اووے چه ،، امیر عبدالرحمان خو د ستاسو د کپر ټیو نه مینار ه جوړه کړی ده ـ او زهٔ به ستاسو د قبرونو خاورے هم په بوجئو کښے کابل ته یوسم ـ د دے د پکو نتیجه دا شوه چه خبره روغه نهٔ شوه ـ او هغه کسان هم چه لا تر اوسه پورے په دے بغاوت کښے شامل نهٔ وو په بغاوت کښے شامل شول ـ او د شینوارو ټوله قبیله د حکومت په بدئ متفق او د جلال آباد نه چاپیره شوه ـ او په لږه موده کښے ئے جلال آباد اونیوه ـ د دے چاونۍ نه د باغیانو لاس ته ډیره وسله راغله ـ

جلال آباد د سمت مشرقی دارالخلافه وه چه د حکومت د لاس نه دا مقام او وتلونو بغاوت اوس یوائے د شینوارو په قبیله کښے محدود پاتے نهٔ شو ـ بلکه د کونړ، کامے

او لغمان وغیره علاقو خلق په کښې هم شامل شول. د ملک په دې حصه کښې باقاعده حکومت سقوط اوموند. یاغیان په ټوله علاقه کښې خوارهٔ شول. په هرلورې قتلونه اوخونریزئ شروع شوې. زړې دشمنئ بیا تازه شوې. نهٔ د چا مال محفوظ وو او نهٔ سر. د حکومت ویره ترهه د خلقو د زړونو نه اووتله. بغاوت په ډیرې تیزئ د کابل په لور روان وو.

چه سردار شیر احمد خان د صلح صلاحیت په فضا قائمولو کښې ناکامیاب شو نودا کار "محمود خان یاور" نومې یو سردار ته حواله شو. دا سړې هم د امان الله خان منظور نظر وو. او د سفر یورپ نه اول ئې دهٔ ته ډیرې اهمې محکمې سپارلې وې. چه یو پکښې د سرحداتو محکمه هم وه. ولې د دې کار د پاره "محمود خان یاور" هم موزون نهٔ وو. دا ظاهره وه چه دا بغاوت د مذهب په نامه شروع شوې وو. او محمود خان یاور د اولس په نظر کښې د مذهبي اړخ له خوا ډیر عیب ژن وو. دې سردار به په څرګنده شراب څښل. او د مذهبي احکامو مخالف به ئې پرچار کولو. به هرحال محمود خان یاور هم په لویه دبدبه او د کامیابئ په تلوسه کښې د سمت مشرق د رئیس تنظیمي په حیثیت کښې جلال آباد ته روان شو. ولې دهٔ د رسیدلو نه وړاندې جلال آباد سقوط موندلې وو. او یاغیانو پرې قبضه کړې وه. نو محمود خان یاور خپل هیډکوارټر په "نمله" کښې مقرر کړو. چه د کابل په لور د جلال آباد نه پنځه دیرش میله په فاصله یو مقام دې.

په جلال آباد کښې چه د حکومت کوم نیم ښکورې فوځ پاتې شوې وو. هغه اوس نملې ته راغې. ولې د جلال آباد په قبضه کولو د یاغیانو طاقت ډیر مضبوط شوې وو. او د هغوی په لاس ډیره وسله راغلې وه. د غه وخت د صلح صلاحیت خبرې هغوی ته ټوقې ښکاریدې. په سمت مشرقي کښې د هغوی اقتدار ختم شوې وو. او په ټوله علاقه کښې عملاً د یاغیانو راج وو. محمود خان یاور د روغې په باب کښې څه ډیر کوششونه اوکړل ولې کامیاب نهٔ شو. یاغیانو په نمله هم حمله اوکړه. او قبضه ئې پرې اوکړه. محمود خان یاور هم د یاغیانو په لاس کښې ګرفتار شو. یاغیانو د نملې او کابل ترمینځه د ټیلي فون سلسله هم پرې کړه. د غه وجه وه چه د نملې د سقوط او محمود خان یاور د ګرفتارئ خبر درې ورځې پس کابل ته اورسید. د غه وخت د حالاتو د سنګینئ احساس حکومت ته هم اوشو. اوس د یو داسې سړي تالاش شروع شو چه د هغهٔ د تدبرنه دا

توقع کیدے شوه چه دا اوربه سوړ کړی - دا سړے سردار علی احمد جان وو-

دا سردار دامان الله خان دماما څوئے او دهغهٔ اوښے هم وو- او یو ډیرمدبر او دکارسړے وو - ولے دامان الله خان به زړهٔ کښے ددهٔ نه ویره کیدله- او دا خیال ئے پیدا شوے وو چه دبادشاهئ د پاره دے زما مدعی دے - دغه وجه وه چه د یورپ په سفرکښے هم دے دخپل ځان سره ساتلے وو - ولے چه دیورپ نه بیر ته راغلو نو بیا ئے ورته بیخی شا کړه- او نهٔ صرف دا چه د ذمه وارئ څه عهده ئے نهٔ ورکوله- بلکه دهغهٔ سپکاوے به ئے هم کولو- ولے اوس په دے تنکسیا کښے بیا هغهٔ ته محتاج شو او د یو څو شرطونو او لوظونو نه پس سردار علی احمد جان د سمتِ مشرقی د رئیس تنظیمی په حیثیت دکابل نه روان شو- دغه وخت بغاوت دخوګیانو علاقے ته رارسیدلے وو - په خوګیانوکښے دعلی احمد جان ډیر اثر ورسوخ وو- او دا توقع کیدے شوه چه دے به دخپل تدبر په زور د حالاتو رُخ بدل کړی- ولے دغه وخت حالات دومره خراب شوی وو چه دا صلاح دکور نه وتلی وو- به هرحال علی احمد جان د جګدلک په مقام دیره شو- دا ځائے دکابل او جلال آباد ترمینځه واقع دے- د سردار دپاره دا یوه ګرانه کشاله وه- د هغهٔ دپاره سوا ددے نه بله لار نهٔ وه چه د قبائیلو یوه جرګه راغونډه کړی- او په څه چل ول په هغوی کښے څه روپیدا کړی- د سردار علی احمد جان په کوششونو جرګه خو راغونډه شوه- ولے د شینوارو قبیله په کښے شامله نهٔ شوه- په جرګه کښے دا خبره معلومه شوه چه دحکومت برخلاف چه کوم اور لګیدلے دے هغه دا سے په اسانه د مړکیدو نهٔ دے- دجرګے اوله مطالبه دا وه چه امان الله خان دِ د تخت نه دست بردار شی- نو نورے خبرے به هله کیږی.دلته دا جرګے مرکے جاری وے چه ناڅاپه په کابل باندے بچه سقه حمله اوکړه- او حالاتو په ډیرے تیزئ یو نوے شکل اختیار کړو- ولے اول ددے نه چه په کابل باندے ددے حملے حال بیان شی د بچه سقه په حقله ضروری معلومات پیش کول به غیر موزون نهٔ وی-

د بچه سقه اصلی نامه حبیب الله خان وه- او دا عجیبه اتفاق دے چه پلار ئے هم عبدالرحمان نومیدهٔ- دکوه دامان او سیدونکے او یو غریب او نوم وروکے سړے وو- او د افغانستان د هغه فوځ چه د "نموئے ټولے" به ورته وئیلے شو یو سپاهی وو- د نموئے دا فوځ په کال ۲۲-۱۹۲۱ئ کښے د یو ترکی جرنیل "جمال پاشا" په نګرانئ او تربیت کښ

په دې غرض قائم شوې وو چه د افغانستان ټول فوځونه به هم په دې ډول مرتب کولې شي - د ,, جمال پاشا ,, د تلو نه پس افغاني حکومت د افوځ مات کړې وو - ولې د منګلو د بغاوت په ورځو کښې حکومت ته د دې فوځ ضرورت بیا پیښ شوې وو - دا فوځیان د منګلو په بغاوت کښې جنګیدلي وو - او د جنګ ختمید و نه پس د کابل په ارګ کښې ځائ ورکړې شوې وو - دا سپاهیان خپلو کورونو ته ډیر لیواله وو - ولې حکومت دوئ ته موقع نه ورکوله - نو دوئ به په پټه یو یو، دوه دوه کورونو ته تلل او څو ورځې پس به بیا حاضریدل - د دوئ دا چل نورو فوځیانو هم لاندې کړو - نو هغوی به هم په پټه کورونو ته تلل راتلل - او چه حکومت د دې نه خبر شو نو د دې خرابئ د بندایز په غرض ئې د کابل په څلور طرفه په لاروکښې د سپاهیانو پیرې څوکئ مقرر کړې - او چه کوم سپاهیان به داسې په پټه تلل نو هغوی به ئې رانیول او بیرته به ئې کابل ته راوستل -

یوه ورځ بچه سقه هم د یو څو ملګرو سره په پټه کور ته روان وو - چه په لاره کښې پرې د پیرې سپاهیان پیښ شول - او د هغوی سره د دوئ بد کلامي او سوک څپیړه اوشوه - بچه سقه ته په دې خبره سوځت ورغلو او په خپل ټوپک ئې یو پیره دار سپاهي اوویشتلو - د دوئ او د پیره دارانو سپاهیانو ترمینځه ډزې شروع شوې - او د څه ساعت نه پس دوه درې پیره داران سپاهیان ژوبل شول او یو په کښې مړ شو - د پیرې سپاهیان اوتښتیدل - بچه سقه د هغه مړ سپاهي ټوپک هم ترلاسه کړو - او د خپلو ملګرو سره کور ته روان شو - اوس بچه سقه یوائ یو تګوړ سپاهي نه وو بلکه د حکومت د یو سپاهي قاتل هم وو - دغه وجه وه چه هغه مفرور شو او رهزنئ ئې اختیار کړه -

په کومو ورځو کښې چه امان الله خان د یورپ په سفر روانید و په هغه ورځو کښې دکوهستان او کوه دامان په علاقه کښې د ډاکه مارانو ډیر زور وو - او حکومت ئې د دې خبرې ته مجبور کړې وو - چه د قیام امن په خاطر د دې علاقې ته خاصه توجه اوکړي - په دې ورځو کښې لا بچه سقه ډیر شهرت نه وو حاصل کړې - بلکه د ډاکه مارو او رهزنانو په لړ کښې یو بل سړې د شهرت انتها ته رسیدلې وو - د ده نامه سید حسین وه - سید حسین د سیدانو د یوې درنې کورنئ او لوئې جائداد خاوند وو - ولې د ناموس داری په یوې معامله کښې ئې خونونه کړی او بیا مفرور شوې وو - تر ډیرې مودې د بچه سقه په نسبت سید حسین د لوئې درز خاوند وو -

د امان الله خان په اصلاحاتو کښې دا هم وو چه په وړوکوالی کښې به جینۍ نهٔ ودیږې. او دیوې ښځې نه به زیاتې ښځې څوک نهٔ کوی - او که چرې د ښځې او څښتن تعلقات ښهٔ نهٔ وی او ښځهٔ طلاق حاصلول غواړی نو هغه به دا حق لری. د اصلاحاتو په حقله څه رنګ چه د ملک په نورو حصو کښې په اولس کښې مخالفانه ګنګوسے او مششې شروع وے دغه رنګ د کوهِ دامان او کوهستان په علاقه کښې په خصوصیت سره د دے پورته اصلاحاتو په حقله مخالفانه جذبات پاریدلی وو - او د دوئ په خیال کښې دا خبره په مذهب کښې مداخلت وو- ولے سره د دے مخالفت دوئ لا د حکومت برخلاف د مذهب په نامه بغاوت ته تیار نهٔ وو- ولے هرکله چه په سمت مشرقی کښې د حکومت برخلاف د مذهب په نامه بغاوت اوشو- او د ملک نورے حصے هم د هغې نه متاثر شوے نو په دے ډول د ملک په دے حصه کښې هم د حکومت برخلاف د نفرت او مخالفت په جذباتو کښې شدت پیدا شوے وو - او د یاغیانو سره همدردی زیاته شوی وه - په دغه ورځو کښې بچه سقه او د هغهٔ ملګرو د ترکستان نه راتلونکی یو قافله اولوټله - او په دے وجه د هغهٔ شهرت زیات شو - او د هرچا په خله کښې راغلو- ولے تر دغه وخته نهٔ د بچه سقه په و هم کښې دا خبره راتله چه هغه به د حکومت تخته اپوته کړی - او نهٔ په اولس کښې د چا داګمان کیدلو- البته بچه سقه په دے خبره ښهٔ پوهه وو چه هغه د حکومت اماني یاغی دے. او د دے حکومت په بقا کښې د هغهٔ فنا ده - نو په سمت مشرقی کښې د الغاوۆ تلغاؤ نه هغهٔ دا فائده واخستله چه که د حکومت برخلاف په سمت شمالی (کوهستان او کوه دامان) کښې هم بغاوت اوشي نو خوا که د هغې نتیجه د بچه سقه او د هغهٔ د ملګرو تباهي ولے نهٔ وی ولے دغه وخت به د دوئ دا مرګونه د غلو او شوکمارو په ډول نهٔ وی بلکه دوئ به د یو بے دینه حکومت برخلاف د مذهب په ننګ جنګیدونکی شهیدان اوګڼلے شی.

په دے ورځو کښې د حکومت د لوری نه د فوځي برتي اعلان شوے وو. د حکومت فوځونه به اکثر هم د دے علاقو د خلقو نه مرتب کیدل. د اعلان په موجب د حکومت یو افسر اعلی علی احمد خان په "جبل السراج" کښې د سپاهیانو د برتي کولو په غرض دیره شوے وو - بچه سقه په دغه وخت کښې د حکومت برخلاف په څرګنده میدان ته راوتلے وو - او خلق به ئے د برتي کیدلو نه منع کول - د خلقو په خیال کښې خو هسے هم په دے فوځونو کښې برتي کیدل ښهٔ نهٔ وو - ځکه چه دوئ به د سمت مشرقی د یاغیانو سره جنګ ته لیږلے شول - او د دوئ په خیال کښې هغه یاغیان د مذهب د ننګ و حفاظت په غرض

میدان ته راوتلی وو - بل طرف ته د بچه سقه د پکو هم په غلقو ویره کښېنوله - د
دے نتیجه دا شوه چه د فوځونو د برتئ چه کوم امید وو - هغه پوره نه شو - په
دے خبره دامان الله خان سره هم فکر پیدا شو او هغه علی احمد خان د مشورے
د پاره کابل ته راوغوښت او د هغه پیچه مشورے نه پس ئے بیا جبل السراج ته اولیږلو -

علی احمد چه جبل السراج ته اورسید نو د ، سید حسین ، او ، بچه سقه ، دواړو
سره ئے خان ځان له خبرے اوکړے او د هغوی سره ئے یو فیصله اوکړه - فیصله دا وه
چه بچه سقه او سید حسین او د دوئ هغه ملګری د کومو چه دوئ ذمه واری اخلی
او سفارش ئے کوی حکومت به هغه ټول معاف کړی - او د تیرو جرمونو په حقله به
ورله هیڅ نه وائی - د دے نه علاوه سید حسین او بچه سقه ته به په فوځ کښے د کرنیلئ
عهدے ورکړے شی - او دوئ دواړه به خپل ملګری او رضا کار د حکومت په مرسته کښے د
مشرقی سمت جنګ ته بیائی - حکومت به دوئ ته دوه سوه ټوپکے ، کارتوسونه او نور
ضروری سامان هم ورکړی - سید حسین او بچه سقه به د حکومت په فوځونو کښے د
برتئ مخالفت هم نه کوی -

دا مشوره هم په وار خطایئ او اضطراری حالت کښے شوی وه - د دے نه سید
حسین او بچه سقه ته خپل اهمیت محسوس شو - او د حکومت کمزوری ورته معلومه
شوه - د دے روغ نه پس د کابل په اخبارونو کښے د سید حسین او بچه سقه صفتونه
شروع شول - ولے سره د دے د بچه سقه په زړه کښے د بادشاه د دیانتدارئ په حقله
څه شبهے موجودے وے او د هغه سره داویره وه چه دا فیصله شاید چه د هغه
د نیولو د پاره یو جال وی - په دے غرض هغه یو ورځ د جبل السراج نه بادشاه ته
ټیلیفون اوکړو - او دا ئے څرګنده کړه چه دا ټیلی فون ګوندے دا حمد خان رئیس تنظیمه
دلوری نه دے - بچه سقه بادشاه ته دا اووئیل ، بچه سقه بالکل په قابو کښے راغلے
دے - او د سپاهیانو د پیرے لاندے په یو کمره کښے بند دے - حضور د هغه په باب کښے
څه حکم کوی ؟ ، بادشاه ورله سمدستی دا اووئیل ، دا سپے هم په دے ټکی او وژنه -
او سرئے کابل ته راولیږه - ، بچه سقه چه دا واوریدل نو خپل ځان ئے بادشاه ته څرګند
کړو - او ډیرے سپکے سپورے خبرے ئے ورله اوکړے - دا خبره سمدستی په ټوله علاقه
کښے خوره شوه - سید حسین چه د دے نه خبر شو نو سمدستی ئے خپله ډله راغونډه کړه
او په جبل السراج ئے حمله اوکړه - او علی احمد خان ئے په قلا کښے ګیر کړو -

سید حسین او بچه سقه په خپلو کښې رقیبان وو - چه سید حسین په جبل السراج حمله اوکړه نو بچه سقه دا غوره اوګڼله چه حغه د سید حسین نه هم یو قدم وړاندې لاړ شي - نو حغه په کابل باندې د حملې کولو اراده اوکړه - دغه وخت د حغه سره دوه درې سوه وسله بند او درې څلور سوه بې وسلې ملا تړ وو - په دې کښې شک نشته چه د حکومت وزارت حربیه ته ډیر اګاهو د کابل په لور د بچه سقه د یلغار خبر دارسیدلے وو - ولې وزارت د دې هیڅ تابیا نۀ وه کړې - او دا ئې هسې یو بازاري ګپ ګڼلے وو - په دغه ورځو کښې وزیر حربیه سردار عبد العزیز خان وو چه د قند هار یو دراني وو - دا سړے د مدنه زیات مغرور، بې شانه مریض او رشوت خور وو - او د امان الله خان د زوال په اسبابو کښې یو سبب د دې سردار شخصیت او کردار هم وو -

بچه سقه د خپلو ملګرو سره بې ډزه بې ډوزه د کابل نه بهر په درې اهمو ځایونو قبضه اوکړه - په ټول ښار کښې د دې حملې په وجه یو لوئې الغاؤ تلغاؤ جوړ شو - د شاهي خاندان ټول افراد په "ارګ" کښې راغونډ شول - بادشاه د رعیت خلقو ته د ټوپکو ورکولو اعلان اوکړو - هر سړے به تلو ټوپک به ئې په اوږه کولو - او په ځائې د دې چه د جنګ میدان ته تلې وے د خپل کور مخه به ئې نیوله - په دې غرض چه په دے ټوپک به د خپل کور حفاظت کوي - بچه سقه د اکتوبر په اخر کښې په کال ۱۹۲۸ء کښې په کابل حمله کړې وه - د حغه دا خیال وو - چه په وړومبۍ ورځ به په چپه خُله په کابل ورد ننه شي - او په "ارګ" باندې به قبضه اوکړي - ولې د حغه د توقع نه خلاف شاهي رسالے په ډیرې بې دردۍ او جان فشانۍ د حغه مقابله شروع کړه - سقاویان دیارلس ورځې د کابل په خوااوشا کښې په بهرینو غونډیو قابض وو - په دې عرصه کښې حغه سید حسین ته د امداد د پاره ډیر خبرونه اوکړل - ولې نۀ خو حغه ته د سید حسین نه څه امداد رااورسیدۀ - او نۀ د کوه دامان خلقو د حغه څه مرسته اوکړه - او د دې وجه دا وه چه تر دغه وخته د خلقو په وهم کښې هم دا خبره نۀ ګرزیدله چه حکومت به دومره زر سقوط وموي - په دې جنګ کښې بچه سقه په خپله هم ډیر سخت ژوبل شوے وو - ولې حغه اوس د خپل ژوند نه لاس وینځلی وو - او څکه په ډیرې بهادرۍ جنګیدلو -

بچه سقه په یو داسې ځائې قبضه کړې وه - چه د هغې نه برطانوي سفارت خانه د یو څو ګزو په فاصله وه - د سقاویانو دا خیال وو چه افغاني حکومت به د دې سفارت خانې د حفاظت په خیال په دوئ باندې ګوله باري ته تن کښې نۀ دي - ولې حکومت د سفارتخانې

دمحافظت د خیال نه بې پروا په سقاویانو ګوله باری شروع کړه. او دا ویره ساعت په ساعت زیاتیدله. چه د سفارت خانې عمارت او د هغې استوګن به ټول تباه شي. په دې موقع برطانوی حکومت دخپلې سفارتخانې د محافظت په غرض د هوائي جهازونو په ذریعه دکابل په خوااوشا کښې په پښتو او فارسي ژبه د دې مقصد اشتهارونه اوغورزول چه که برطانوی سفارت خانې ته څه قسم نقصان اورسیدلو نو د هغې ذمه واری به د افغانستان د اولس په غاړه وی. د دې اشتهارونو ژبه ډیره سپوره او سخته وه. څکه دکابل خلق او حکومت په دې ډیر ناراض شول. د خلقو د ناراضګۍ عنه وجه دا وه چه په دې انقلاب کښې د عوامو په خیال کښې د باغیانو سره د برطانوی حکومت مرسته شامله وه. به هر حال برطانوی سفارت خانې ته هم په ګوله باری څه نقصان اورسیدو. ولې بچه سقه دکابل د اطرافو نه په دیارلسمه ورځ لرې کړې شو.

د سمت شمالی په خلقو کښې چه د بچه سقه د دې شکست اواز خور شو. نو په خلقو کښې بیا د حکومت وقار قائم شو. او د هغوی سره دا ویره پیدا شوه چه د بچه سقه په تعاقب کښې به شاهی فوځونه راشي او یواځې دا نه چه د دوئ علاقه به پائمال شي بلکه د بچه سقه د سرکښئ بدل به هم د دوئ نه واخلی. د دې وجه وه چه د دغه وخت عام خلق د بچه سقه نزدیکیت ته تیار نه وو. ولې حکومت په دې موقع هم لویه غلطی اوکړه. په کابل کښې د څه معمولی باقاعده فوځ نه علاوه قبائیلی لښکر هم موجود وو. دا قبائیلی لښکر رضا کارانه د حکومت مرستې ته راغلی وو. په دوئ کښې اکثر د سمت جنوبي منګل او جدران اولس وو. په کومو ورځو کښې چه منګلو بغاوت کړې وو. په هغه ورځو کښې د سمت شمالی ډیر خلق د منګلو مقابلې ته تلی وو. او هلته ئې ډیر زیاتې کړې وو. اوس چه په سمت شمالی کښې دبغاوت اوازه خوره شوې وه نو د سمت جنوبي هغه خلق چه د دوئ د لاسه دردیدلی وو. څه خو د بدل په خیال او څه د ټوپک او مال غنیمت په خواهش کښې کابل ته راغلی وو. ولې حکومت تر هغه وخته د سمت شمالی په لور اقدام اونه کړو. ترڅو چه ئې باقاعده فوځونه نه وو مهیا کړی. په دې انتظار کښې شل پنځویشت ورځې تیرې شوې.

بچه سقه او د هغه ملګرو چه عام خلق د خپل ځان نه پریښه اولیدل نو هغوی هم په خپله تابیا کښې ګیا شول. د بچه سقه په ملګرو کښې داسې ملایان هم وو چه هغوی د امان الله خان نه ناراض وو. دې ملایانو د بچه سقه د امارت او بیعت تجویز پیش کړو. ولې دا تجویز تر هغه وخته نه شو کامیابیدلې ترڅو چه سید حسین هم نه وې منلې. څکه

چه عملاً په دغو ورځو کښې د سمت شمالي حکومت د بچه سقو او سيد حسين د واړو په لاس کښې وو - په دې غرض بچه سقو د خپل طرف نه سيد حسين ته دا پيغام اوليږلو چه که د امان الله خان حکومت برطرف کول غواړې نو دا به ښه اوشي چه زه يا ته د خپل امارت دعوىٰ اوکړو. او خلقو نه بيعت واخلو - او د خپل طرف نه ئې ورته دا هم اووې چه ته چونکه سيد او آل رسولؐ ئې نو ته امير شه - او زه به دې بيعت اوکړم - ولې د سيد حسين په خيال کښې څه چه د هيچا په خيال کښې دا خبره نه راتله چه واقعات به دومره زر د بچه سقه په مرسته کښې خپل رخ بدل کړي - نو د سيد حسين د اميرکيدو نه انکار اوکړو - او بچه سقه ته ئې اووئيل چه که ته د خپل امارت اعلان اوکړې نو زما هيڅ گيله او اعتراض به نه وي - بچه سقه چه د سيد حسين نه بے غمه شو نو د خپل امارت اعلان ئې اوکړو - او د خلقو نه ئې بيعت واخست - دغه شان د خلقو په خيال کښې د امان الله خان مقابله کول په مذهبي نقطهٔ نگاه يو درست کار وو -

په دې ورځو کښې چه د سمت شمالي خلقو د بچه سقه د شکست په وجه د حکومت نه په ويره کښې وو - د امان الله خان حکومت به په دې خلقو د هوائي جهازونو نه اشتهارونه غورزول - د دې اشتهارونو نه به د حکومت مطلب داوو. چه عام خلق د بچه سقه د مرستې نه واوړي - ولې د بچه سقه حاميانو به د دې اشتهارونو ډير غلط مفهوم په خلقو کښې خورولو - او د خلقو په خطراتو کښې به ئې نوره اضافه هم پيدا کوله - په بل لور سقاويانو به هم په اولس سختئ کولے - او چا چه به د دوئ مرسته نه کوله. هغه به ئې سخت سزا ورکوله [؟] - په دې دوران کښې به حکومت هم کله کله په دې خلقو د هوائي جهازونو نه بمبارى کوله - دې خبرو عام اولس په يودوه کښې حيران کړے وو - په دوئ د ډانگ او پړانگ مثال صادق راتلو - اخر دې خبرو د سمت شمالي خلق په بچه سقه د حمايت ته اماده کړل -

د بچه سقه د شکست نه درې هفتې وروستو حکومت د کابل د حفاظت او مدافعت نه پس د فوځ يو دسته او د قبائلي لښکر څه حصه د بچه سقه د مقابلې په غرض د سور جرنيل ، محمد عمر خان په ماتحتئ کښې د سمت شمالي په لور اوليږله - د بده مرغه د سور جرنيل او د دې قبائلي لښکر د سردارانو چه اکثر د منگل او جدران قبيلو وو - تعلقات د بغاوت منگل د وخت نه ښه نه وو - دا لښکر چه د کابل نه لس ميله وړاندې لاړ نو هلته ئې د قلعه مراد بيگ مخامخ په يو غونډئ باندې کيمپ اولگولو - او د دغه مقام ئې د خپلې پيش قدمئ مرکز او ټاکلو - په دې وخت کښې د بچه سقه حالت ډير نازک او خطرناک

وو. د هغهٔ د سړو شمیر ډیر کم وو. او د شاهي فوځونو د راتلو په وجه د دوئ زړونه هم غورځیدلي وو. په دې موقع بچه سقه د سید حسین نه هم امداد او غوښتلو او هغهٔ ته ئې په خپل حکومت د وزیر جنګ عهده پیش کړه. دغه وخت کښې د سید حسین هم د هغهٔ د کامیابئ په حقله څه خیال پیدا شوے وو. نو هغه خپل ملګري خو د بچه سقه امداد ته رااولیږل. ولې په خپله د نورے بهرتئ په بهانه وروستو پاتې شو. په دې غرض چه د بچه سقه د ناکامیابئ په صورت کښې د تیښتې لار ازاده وي.

دا د بچه سقه خوش قسمتي وه چه د امان الله خان د حکومت وزیرانو او ذمه وارو افرادو به په وارخطایئ او پریشانئ کښې داسې کارونه کول چه د هغې فائده به اوچ په وچه بچه سقه ته وتله. او هغه به ئې د کابل تخت ته بې تکلیفه را نزدو کولو. د حکومت او بچه سقه د فوځونو ترمینځ یوه غونډئ حائله وه. د دواړو طرفونه به ګولئ چلیدلے. ولې د حکومت فوځونو لا پیش قدمي نهٔ وه کړي چه یو افسوس ناکه واقعه اوشوه. د سور جرنیل او منګل سردارانو زړونه د وړاندې نه خیرن وو. دغه وخت دوئ په څه خبره په خپلو کښې وران شول. او د بد کلامئ او بدو ردو نه خبره ټوپکو ته اورسیده. او دوئ په یو بل ګولئ اوچلولے. سور جرنیل په ټپنه او لګیدهٔ. د دې واقع خبر چه کابل ته اورسید نو د بادشاه وکیل ولي محمد خان سمدستي موقع ته راغ. او د طرفینو په مینځ کښې ئې صلح اوکړه. ولې اوس د معاملې نه ورانه ماشوره جوړه شوې وه. د قبائیلي رضاکارانو او شاهي فوځونو ترمینځه د بې اعتمادئ فضا پیدا شوې وه.

د دې واقع نه پس د شپې د بچه سقه ورور چه حمید الله نومیدهٔ. بې اعتبې طبع په شاهي کیمپ شبخون اووهلو. د دهٔ سره پنځه سوه سړي وو. او داغ ئې په څلورو واړه طرفه تقسیم کړي وو. د شپې په تیارهٔ کښې چه شاهي فوځونه په خپلو خیمو کښې اودهٔ پراتهٔ وو. ناڅاپه په یو هغوي ډزې شروع شوې. شاهي فوځونه په ډیرے وارخطایئ کښې پیدا شول. او دا خیال ئې اوکړو. چه دا قبائیلي رضاکار دي. او د خپل بادشاه د قتلو په غرض ئې حمله کړي ده. د دې خیال د راتلو سره سم هغوي هر څه په ځائې پریښول. او د کابل مخه ئې اونیوله. سحر د بچه سقه ورور د دې ټکوړه فوځ په سامان او وسلو قبضه اوکړه. دا دومره سامان وو چه د بچه سقه ملا ئې مضبوطه کړه. او د هغهٔ د پاره ئې د تخت کابل لاره هواره کړه. د دې فوځ د تښتیدو خبر هم هغه وخت په نیمه شپه کښې بادشاه

ته په ټیلیفون ورکړے شوے وو. ولے دامان الله خان د باره یواځے داغم نهٔ وو. هم په دغه ورځو کښے سردار علی احمد جان هم په مشرقی سمت کښے د خپلے بادشاهئ اعلان کړے وو. او په کابل باندے د حملے کولو په تیاریانو کښے لګیا وو. د سمت شمالی دامصیبت پرے لا د پاسه شو. د دے واقعاتو دامان الله خان زړهٔ داسے پرے یستلو. چه هغهٔ د تخت کابل د پریښودلو اراده اوکړه. او هم په دغه شپه د خپل ورور سردار عنایت الله خان په حق کښے د تخت نه دست بردار شو. او سحر وختی اته بجے په ۱۴ ر جنوری ۱۹۲۹ء د کابل نه د قندهار په لور روان شو.

د بچه سقه د غیر متوقع کامیابئ چرچه بله ورځ سحر وختی په کابل ښار کښے خوره شوه. ولے دامان الله خان د تخت نه د دست برداری او د کابل نه د هغهٔ د تلو حال لا چا ته معلوم نهٔ وو. هم په دغه ورځ د کابل مشران ارګ ته اوبللے شول. او هغوی ته د عنایت الله خان په حق کښے دامان الله خان د دست برداری خط اوښودلے شو. د کابل مشرانو د عنایت الله خان بیعت اوکړو. او د هغهٔ د تخت نشینئ داعلان په غرض توپے خلاصے شوے. عنایت الله خان د کابل په تخت داسے وخت کښے کښیناست چه د ملک یوه لویه حصه عملاً د حکومت د لاس نه وتلی وه. د سردار عنایت الله خان د تخت نشینئ دستوره د ملاے شور بازار کشر ورور اقاے شیر احمد خان اوکړه. دا ښاغلے د دے واقع نه خوولے اګاهو امان الله خان د قید نه ازاد کړے وو.

د شور بازار کورنئ په افغانستان کښے دامتیازی سلوک خاونده وه. او د مذهبي اثر ورسوخ په وجه ئے د ملک په سیاسیاتو کښے خاص اهمیت لرلو. د افغانستان په اکثرو قبیلو کښے د دے کورنئ د پیرئ مریدئ سلسله په ډیرو زورو بنیادونو قائمه وه. او د افغانستان د بادشاهانو د تاج پوشئ دستوره به هم د دے خاندان د افرادو په لاس کیدله. او د دے امتیاز په وجه د دے کورنئ عزت او احترام نور هم زیات وو. دامان الله خان د حکومت په ابتدائی کالونو کښے لا د دے کورنئ شان وشوکت په ځائے وو. ولے چه امان الله خان په ملک کښے د اصلاحاتو اجراء اوکړه نو د دے خاندان په عزت کښے هم د وړاندے په نسبت کمے راغلو. د منګلو د بغاوت په دوران کښے چه د دے بغاوت مشر هم یو مذهبي عالم ګود ملا وو. د امان الله خان دلوری نه ملا ئے شور بازار هغهٔ ته د جرګے او صلح په غرض لیږلے شوے وو. ولے ګود ملا د شور بازار دا جرګه نهٔ وه منلی. په دے وجه دامان الله خان په نظر کښے د هغهٔ احترام کم شوے وو. د دے علاوه د افغانستان په غلجي قبایلو

کښې د سلیمان خیلو قبیله چه د خپل شیر او مال و ثروت په لحاظ د افغانستان په ټولو قبائیلو کښې یوه لویه قبیله ده - په خصوصیت سره د ملا ځ شور بازار تعلق داره وه - دا قبیله د امان الله خان نه په یو څو خبرو ناراضه وه - د دوئ د ناراضګئ یوه وجه خو دا وه چه امان الله خان د دوئ په مقابله کښې د هزاره قام جائز شکایتونه منلی وو - او هغوی ځ د سلیمان خیلو د ظلمونو نه خلاص کړی وو - د دوئ د خفګان دویمه وجه دا وه چه د دوئ پیر ملا ځ شور بازار چه هغه د حکومت په دربار کښې د دے خلقو د جائز و ناجائز و سفارشونو یوه لویه ذریعه وه - امان الله خان د نظر نه غورزولے وه - او اوس به د دوئ ناجائز کارونه نۀ کیدل - د غه شان نورے هم څه ورے ورے خبرے وے - چه د هغ په وجه د شور بازار د کورنئ او امان الله خان ترمینځه غلط فهمئ پیدا شوی وے - او د یوبل نه د دوئ زړونه خبرن شوی وو چنانچه ملا ځ شور بازار د حج په اراده د افغانستان نه تلے وو - او چه د حج نه بیرته راغ نو د هندوستان په سرهند نومے ښار کښې دیره شوے وو - او د هغه ځائے نه به ځ د افغانستان د مریدانو سره خپله رابطه ساتله - د شور بازار نوره کورنئ په افغانستان کښې وه - د شیر آقا د قید وجه دا وه چه دۀ او د دۀ څو ملګرو د افغانستان په سمت جنوبي کښې د امان الله خان بر خلاف په څرګنده د جهاد تبلیغ کولو - او په موقع نیولی شوی وو - ددۀ یو ملګرے خو هغه وخت پانسی شوے وو خو چونکه ملا ځ شور بازار په افغانستان کښې موجود نۀ وو او د هغۀ نه ډیره خطره کیدے شوه - نو د شیر آقا د پانسی کولو جرأت امان الله خان او نۀ کړے شو - او هغه ځ قید کړو - ولے دا یقینی وه چه که چرے امان الله خان کامیاب شوے وے نو شیر آقا به ضرور پانسی شوے وو -

د امان الله خان د تخت نه په دست بردار کیدو او د عنایت الله خان په تخت نشین کیدو دا توقع پیدا شوه چه اوس به بغاوت سوړشی ځکه چه د باغیانو لویه مطالبه دا وه چه امان الله خان دِ تخت پرېږدی - چه د عنایت الله خان د تخت نشینئ دستوره او شوه نو د بچه سقه سره د خبرو اترو د پاره د یوے جرګے لیږلو فیصله هم اوشوه - د دے جرګے مشر هم شیر آقا وو - د غه وخت د امیر دوست محمد خان د کورنئ د قسمت واګے د شیر آقا په لاس کښې وے - او شیر آقا په ډیرے هوښیارتیا د امان الله خان نه خپل ټول بدلونه واخستل - د شیر آقا په مشرئ کښې جرګه په موټرونو کښې روانه شوه - دا جرګه چه د کابل د حفاظتي فوځونو مورچو ته اورسیده نو شیر آقا دیوسټ

د پاره د خپل موټر نه راکوز شو. او دے فوځیانو ته ئے اووے ، او بچه ها ! برائے که جنګ میکنید ؟ اگر برائے امان الله خان جنګ میکنید او ګریخته است "، وه بچوا د چا د پاره جنګ کوی ؟ که د امان الله خان د پاره جنګ کوی نو هغه خو تښتیدلے دے "

د شیر آقا د جادو نه ډکے دا دوه جملے بے اثره پاتے نهٔ شوے . شیر آقا خو دا او وے او بیا موټر ته اوختو . او په مخه لاړ . ولے په سپاهیانو د دے خبرے ډیر بد اثر اوشو . هغوی خپلے مورچے پریښودلے او په مخه لاړل. دا د شیر آقا انتهائی چالاکی وه . که چرے هغهٔ سپاهیانو ته د دے خبرے سره دا هم وئیلے وے چه امان الله خان د خپل ورور عنایت الله خان په حق کښے دست برداره شوے او عنایت الله خان تخت نشین شوے دے . او د اصلی صورتحال نه ئے دوئ واقف کړے وے نو په سپاهیانو به غلط رد عمل نهٔ کیدلو . بل طرف ته چه بچه سقه د امان الله خان د تلو نه خبر شو نو هغهٔ د صلح نه انکار اوکړو . او دا ئے اووئیل چه ما دا حیثیت د خپلے توره په زور حاصل کړے دے . لیکن ډیره ممکنه ده چه بچه سقه ته هم شیر آقا څه سبق ورکړے وی . ځکه چه که د شیر آقا زړهٔ د امان الله خان کورنئ ته سپین وے نو د دے توره باوجود هم بچه سقه د دے جوګه نهٔ وو چه هغهٔ دا جرګه نهٔ وے منلے . او د کابل تخت ئے اخستے وے . به هر حال د بچه سقه سره د صلح خبرے اترے ناکامیابه شوے .

هم په دغه شپه د بچه سقه لښکر په کابل راننوت . هیچا د هغهٔ مقابله او نهٔ کړه . د بچه سقه سپاهیان ټوله شپه د کابل په بازارونو او کوځو کښے ګرځیدل او خلقو ته به ئے تسلی ورکوله . او دا به ئے وئیل چه مونږ د دین د خدمت په لړ کښے د کافر بادشاه امان الله خان سره جنګیدلو . او خدائے پاک کامیاب کړو . تاسو خلق هیڅ ویره ترهه مهٔ کوئ . مونږ ستاسو د حفاظت او خدمت د پاره موجود یو . دغه شان ټوله شپه په چغو نعرو او ویرو ترهو کښے تیره شوه . په ارګ کښے هم بادشاه او د حکومت منصب داران ټوله شپه د اننده اقداماتو په غرض په جرګو مرکو کښے لګیا وو . د صلح نه د بچه سقه انکار څه عجیبه حالات کړی وو . هر سړے وارخطا او د خپل ځان په غم کښے وو . اخر عنایت الله خان هم د تخت نه د دست بردارئ فیصله او د ملک نه تلو اراده اوکړه . د بچه سقه او عنایت الله خان ترمینځه هم دا خبرے د شیر آقا په ذریعه کیدلے . فیصله په دے اوشوه چه عنایت الله خان او د هغه آل وعیال به په حفاظت سره د ملک نه بهر ته لیږلے شی . او د ځان سره به درے لکه روپئ هم وړلے شی . د دوئ

ذاتي جائیداد به هم سقاوي حکومت نه ضبطوي - ددې فیصلې نه پس عنایت الله خان
د برطانوي سفارت په جهازونو کښې د خپل آل و عیال سره دکابل نه اووتلو - او هند
ته راغلو - دارګ نه د دوئ د راوتلو ننداره ډیره غم ناکه او درد ناکه وه - داسې یو
څوک نۀ وو چه هغه به ژړلی نۀ وی - عنایت الله خان خپله هم د ارګ دروازې ته ور
ترغاړه شو - او په چغو چغو ئې وژړل - دارګ نه چه دوئ اووتل نو د درانیا نوشاهي
علم رانسکته کړے شو - دا یوه ډیره غمناکه ننداره وه - او د هرچا زړه ئې غوټ کړو - د تلو
نه وړاندې عنایت الله خان د حکومت منصب دارانو ته په ډیرارت مټ انعامونه ور
کړل - او د فوځ کوم سپاهیان چه په ارګ کښې موجود وو هغوی ته ئې د شپږ، وشپږو
میاشتو پیشګی تنخواګانې ورکړې - او د خپل ځان سره ئې هم کافي جواهرات او قیمتي سازو
سامان واخستو - ددې باوجود د بچه سقه په لاس کښې دکابل د خزانې نه شپږ کروړه
روپۍ ورغلې -

لکه چه وړاندې موویلی دی سردار علي احمد جان هم په سمت مشرق کښې د خپلې
بادشاهۍ اعلان کړے او په کابل باندې د حملې په تابیا کښې لګیا وو - ولې دکابل په محاذ
واقعات داسې په تیزۍ سره د بچه سقه په مرسته کښې واوړیدل - چه امان الله خان او
ورپسې عنایت الله خان ئې هم د وطن نه په تلو مجبور کړو - او کابل د بچه سقه په
قبضه کښې راغے - د کابل قبضې د بچه سقه د لارې نه د سردار علي احمد جان ازغے هم بې
تکلیفه لرے کړۀ - دا واقعات داسې وو -

په سمت مشرقي کښې علي احمد جان د امان الله خان په صلاح یا بې صلاح د خپلې بادشاهۍ
اعلان اوکړو - او دکابل د حملې د پاره ئې ځان سمولو چه دکابل د سقوط خبر راغے - د علي
احمد جان سره چه کوم شاهي فوځونه وو - د هغوی زیاته برخه د کوهستان او کوه
دامان په خلقو مشتمله وه - په دے خلقو د بچه سقه د کامیابیدو یو غیر معمولي اثر او
شو - بچه سقه چونکه د دوئ د علاقې او وطن دار وو نو هغۀ سره ورله جنګ ښه نۀ
معلومیدو - په دغه ورځو کښې په خوګیانو قبائیلو کښې هم په نه څه خبره په خپل مینځ کښې
جنګ شروع شو - د علي احمد جان لویه ډله هم دا خلق وو - چه دوئ په خپلو کښې اونګیدل -
نو د هغۀ ټوله لوبه ئې خرابه کړه - نتیجه دا شوه چه د علي احمد جان د خوا نه ټول خلق
تار په تار شول او د هغۀ سره د خپل سر ویره شوه - او هغه هم په ډیر بد حال د ښینوارو
په لار کښې پېښور ته راغے - او بیا قندهار ته لاړ او د امان الله سره یو ځائے شو - دغه شان

د بچه سقه دلارے نه د تخت یو بل دعوے دار هسې بے تکلیفه لرے شو۔

د عنایت الله خان د تلو نه پس بله ورځ بچه سقه په شاهانه انداز کښې په ارګ کښې داخل شو۔ او د کابل هغه خلقو چه درے ورځے اګاهو ځ د عنایت الله خان بیعت کړے وو۔ اوس ئے د بچه سقه بیعت اوکړو۔ د تخت نشینۍ نه پس بچه سقه د خادم دین لقب اختیار کړو۔ په ابتدا کښې خو داویره کیدله چه د بچه سقه او سیدحسین تر مینځه به تر ډیره موده روغه پاتے نه شي۔ ولے اکثر ملایان او اهلکاران د سیدحسین په نسبت د بچه سقه په مرسته ولاړ وو۔ دے خلقو به په ډیرے تندۍ د بچه سقه په مقله راځ عامه هوارولو۔ او د دے نتیجه دا شوه چه د خلقو د ذهن نه ورو ورو د سیدحسین نامه اووتله۔ په کابل باندے د بچه سقه د قبضے سره سم چه خلقو ته د خپلے تباهۍ او بربادۍ کومه ویره پیدا شوی وه۔ هغه د توقع نه خلاف غلطه ثابته شوه۔ بچه سقه د امن وامان په غرض ډیر احکامات جاری کړل۔ او د دے نتیجه دا شوه چه هیڅ قسم لوټ او خونریزی اونه شوه۔ او په دوه څلور ورځ کښې د اعتماد او سکون فضا پیدا شوه۔ کاروبار شروع شو۔ ولے د خلقو دا خوشي ډیره زر لرے شوه۔ څو ورځ پس د سقاؤ اهلکارو دلاسه د کابل خلق ترپوزے راغلل۔ د دوئ دلاس نه به نه د چا مال پټ کیدلو، اونه عزت وابرو۔

د سمت مشرقي نه د سردار علی احمد جان تیښتے د بچه سقه په اطمینان کښې نورهم زیاتے پیدا کړو۔ او هغه د خپل حکومت د استحکام کوششونه شروع کړل۔ د سقاؤ په حکومت کښې د کوهستان اوکوه دامان نه علاوه د کابل علاقه هم شامله وه۔ او د دے طاقت په برکت هغه نورملک هم په خپله قبضه کښې راوستل شو۔ ولے د دے د پاره ضروری وه چه د حکومت تنظیم او تشکیل اوشي۔ د خوش قسمتۍ نه بچه سقه ته یو داسے سړے په لاس ورغلے وو چه هغه د خپل تدبر، دوراندیشۍ او سیاسی فهم و فکرله مخه د امان الله خان د یو لوے نه لوئ وزیرنه هم کم نه وو۔ ولے د امان الله خان په دورکښې دا سړے د دریمے درجے افسرۍ نه نه وو وړاندے شوے۔ د دے سړی نامه شیرجان وه۔ او د بچه سقه د خروج په وخت کښې په کوهِ دامان یو معمولی افسر وو۔ چونکه د امان الله خان د حکومت نه دل برداشته وو نو د بچه سقه ملګرے شو۔ او بچه سقه په کابل قبضه اوکړه۔ نو دا شیرجان ئے خپل وزیر دربار مقرر کړو۔ او د ده ورور ئے وزیر خارجه۔ د دے دواړو ورونو نه علاوه هغه خپل زوړ ملګرے سیدحسین وزیر جنګ او نائب السلطنت مقرر کړو۔ او خپل ورور حمید الله ته ئي د معین السلطنت عهده ورکړے وه۔ څرنګ چې امان الله خان خپل وزور

عنایت الله خان ته دا عهده ورکړی وه. دغه شان ئې د خپل خاندان یو سړے وزیر مال مقرر کړو. او یوئے وزیر خزانه اوټاکلو. او نور وزارتونه ئې بې فائده اوګڼل. نو هغه ئې ماتې کړل. د حکومت د دے نوی تشکیل نه پس بچه سقه د خپل حکومت اصول دیو اعلان په شکل کښې شائع کړل. په دے اعلان کښې د امان الله خان د زمانے ټول اصلاحات او نظامنامے منسوخ کړے شوے دے او د امیر حبیب الله خان مقتول په زمانه کښې چه به په کوم ډول حکومت کیدلو. په هغه اصولو او په هغه ډول د حکومت د چلولو اراده څرګنده کړے شوی وه. د اصلاحاتو په تنسیخ د پوهو خلقو سترګو ته د امیر عبدالرحمٰن او امیر حبیب الله خان د زمانے د بې آئینه او استبدادی حکومت نقشه راوړاندے شوه. او په هغه خلقو کښې چه په دور امانیه کښې د اصلاحاتو سره مانوس شوی او فائدے ئې ترینه اخستی وے لویه مایوسی پیدا شوه. د شهریت حقوق غصب شول. د زورورنه د کمزوری د داد رسئ او انصاف توقع ختمه شوه. او دا ویره پیدا شوه چه دا انقلاب به د ماضی هغه استبدادی او خوفناک دور بیا راستون کړی. ولے داسے او نهٔ شوه. او سقاوی سلطنت د نهو میاشتو حکومت نه پس د سیلاب په وړومبئ چپه ختم شو.

چه په کابل د بچه سقه قبضه شوه نو دغه وخت اکثر غیرملکی سفارتونه هم د کابل نه لاړل. اګرچه اکثرو سفارت خانو د امان الله خان د حکومت د ضعف په وخت کښې د خپلو خپلو سفارتونو په اعضا او عمله کښې کمے کړے وو. برطانوی سفارت هم د عنایت الله خان د تلو نه پس د کابل نه لاړ. لیکن ترکی، ایرانی او روسی سفارتونه د بچه سقه د حکومت په دوران کښې هم په کابل کښې موجود وو. د خپل حکومت په ابتدا کښې بچه سقه د نادرخان د راغونډتلو د پاره د هغهٔ د کورنئ یو فرد احمد شاه خان یورپ ته لیږلے وو. د بچه سقه دا خیال وو چه نادرخان د خپل ذاتی اقتدار او اثر و رسوخ نه علاوه چونکه د امان الله خان نه هم دل برداشته دے نو د هغهٔ د مرستے په وجه به د سقه حکومت استقلال اوموی. لیکن بچه سقه دے خبرو ته هیڅ خیال نهٔ کولو چه نادرخان به د خپل شاهی خاندان عزت واحترام د یو غل د حکومت په منلو تالاکیدو ته څنګه پریږدی. به هرحال بچه سقه د نادرخان د مرستے په حصول کښې تر هغه وخته لګیا وو. ترڅو چه هغهٔ ته د نادرخان د ارادو قطعی علم نهٔ وو حاصل شوے.

لکه چه وړاندے اووئیلے شول په کابل باندے د بچه سقه د قبضے په ابتدائی ورځو کښې په خلقو کښې اطمینان و سکون پیدا شوے وو. ولے دا سکون ډیر زر په یو داسے بے

اطمینانۍ بدل شو چه دکابل د خلقو نه ئې هرڅه هیر کړل. سقاوی اهلکارانو په دوئ داسې ناتار جوړ کړو چه نهٔ د چا مال پټ کیدے شو او نهٔ عزت و ابرو. سرخو به د سقاویانو نه بیا هم په منت زارو او آنو بانو پټ کړے شو. ولے مال د غلو نه پټ کول ناممکن وو. د اوباشو او بدمعاشو خلقو راج وو. د چا سره به چه د چا نهٔ تکیده سمدستی به ئې سقاویانو ته د هغهٔ جاسوسی اوکړه. او بیا به د هغهٔ د خلاصی هیڅ امکان نهٔ وو. په سوونو معزز او درانهٔ خلق د خپلو لوڼو ځوئیندو د عزت و ناموس په لړکښې اووژلے شول. د سقاویانو ظلمونه او ناکردے دومره ډیرے وے چه نهٔ هغهٔ په شمار کښې راتلے شي. او نهٔ ضمیر د هغې وینا ته تیاریدے شي. دومره کافی ده چه د خدائے یو قهر وو چه د بچه سقه په شکل کښې دکابل په خلقو نازل شوے وو.

د بچه سقه حکومت دکابل ګیرچاپیره په یو څو میله علاقه مشتمل وو. د اندرونی تنظیم نه پس د ملک د نورو اطرافو د قبضې مهم شروع شو. سید حسین او بچه سقه لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی یو بل ته په زړونو کښې غلهٔ وو. لیکن په موجوده حالاتو کښې د بچه سقه تله درنه وه. او سید حسین په هغهٔ برین نهٔ شو کولے. نو سید حسین د کابل نه په دے غرض د تلو اراده ظاهره کړه چه د سقه د حکومت د پاره د ترکستان علاقه فتح کړی ولے په زړهٔ کښې د هغهٔ د خپل ځان د پاره د یو ازاد حکومت قائمول مدنظر وو. بچه سقه هم دے وجه د سید حسین د دے خواهش سره رضا ښکاره کړه چه یو خو به د څه موده د پاره د سید حسین د موجودګۍ نه خلاص وی. او د باهمی تصادم ویره به کمه وی. او بل دا خیال ئې هم وو چه که چرے سید حسین په ترکستان قبضه اوکړه نو په هرات باندے به قبضه کول اسان شي. او که امان الله خان په قندهار کښې موجود وی نو د یو لور نه به بچه سقه په حمله او په بل لور به سید حسین په هغهٔ حمله اوکړی او د امان الله خان طاقت به ختم کړی.

په قندهار کښې د امان الله خان د موجودګۍ په وجه په دے علاقه کښې د سقاوی حکومت د ایجنټانو سرګرمۍ کمے وے. بیا هم په جاهله طبقه کښې بچه سقه دومره شهرت موندلے وو. چه د هغهٔ د کامیابی به د روحانی طاقت کرشمه ګڼلے شوه. او اوباشو او لوچه ګانو هغه د یو ولی الله درج ته رسولے وو. سره د دے ډیر خلق داسے هم وو چه بچه سقه ته به ئې د یو غل په نظر کتل. د غزنی او کابل ترمینځه وردګ قبائیل تراخره وخته د بچه سقه برخلاف وو. هرات ته هم د سقاؤ حکومت نهٔ وو رسیدلے. ځکه چه په لاره کښې قندهار وو. او هلته امان الله خان لا موجود وو. هزاره قبائیل هم د امان الله خان

په مرسته ولاړ وو- او د وردګو په ملکرتیا کښې د امان الله خان په مرسته کښې د سقاویانو سره جنګیدل - سمت مشرقي اګر چه د امان الله خان نه یاغي شوے وو- او د شینوارو د بغاوت سرغنه محمد عالم شینوارے او د خوګیانو هغه خانان چه د بچه سقه ملګري وو- کابل ته تلي وو- ولې د دے باوجود په سمت مشرقي کښې د بچه سقه د حکومت قیام لا تر دے وخته ډیر مشکوک وو- په دغه ورځو کښې نادر خان هم د خپلو ورونو سره په سمت جنوبي کښې داخل شوے وو او هغهٔ په سمت مشرقي کښې د خپلو طرفدارانو پیدا کولو په غرض خپل ورور سردار هاشم خان د دے لورې ته رالیږلے وو-

سقاوي حکومت د راتلونکو جنګونو په نیت د فوځ بهرتئ ته زور ورکړے وو- او د کوهستان او کوه دامان په علاقه کښې په ډیر زور و شور د فوځونو برتي جاري وه- د دے علاقې د خلقو دا خیال وو چه که د امان الله خان حکومت بیا قائم شو نو زموږ خیر نشته - د دغه وجه وه چه دا خلق په ډیر اخلاص د سقاوي حکومت مرستے ته ولاړ وو- د دے نه علاوه بچه سقه به د خپلو فوځونو د آرام و اسائش هم ډیر خیال ساتلو- دغه وجه وه چه د امان الله خان په مقابله کښې د فوځیانو همدردي او مینه د بچه سقه سره زیاته وه-

امان الله خان چه د کابل نه قندهار ته راغے نو د هغهٔ علاقے خلق ډیر متعجب شول- او په دے خبره ډیر غصه شول - چه دیوغل او رهزن د مقابلے نه امان الله خان ولے راووتښتیدلو- په دے خبره د قندهار پښتنو د امان الله خان د مرستے نه ځان اوژغورلو - ولے هرکله چه امان الله خان د دوئ نه مایوسه شو او د هرات د تلو اراده ئے ښکاره کړه نو د دغه وخت د قندهار خلقو د هغهٔ مدد ته ملا او تړله- د بد قسمتئ نه دلته هم هغهٔ سردار عبدالعزیز خان خپل وزیر جنګ مقرر کړو- دا سړے تر دے وخته د امان الله خان د دے بد بختئ ذمه وار وو- به هرحال امان الله خان د پنځوبیشت زره قبائیلي لښکر سره د قندهار نه د بچه سقه مقابلے ته روان شو- او غزني ته راورسید- په غزني کښې د سقه څه لږ شان فوځ د مقابلے په غرض موجود وو- ولې د مقابلے جوګه نهٔ وو- او قریب وه چه په غزني د امان الله خان قبضه شوے وے- ولې عین هم په دغه موقعه د غلجي قام سلیمان خیل قبائیل د بچه سقه په مرسته اودریدل - یو خو د غلجیو او درانیانو مخالفت څه ډیر پخوانے وو- او په دے موقع د دے مخالفت بله وجه دا وه چه د سلیمان خیلو او هزاره قام ترمینځه دښمني وه - او امان الله خان د سلیمان خیلو په مقابله کښې

دهزاره قام سره څه انصاف کړے وو۔او په دے خبره سلیمان خیل د امان الله خان نه خفه وو۔ د دے نه علاوه دا قبائیل دملاګانو شور بازار هم مریدان وو۔ او داګمان هم کیدے شی چه په دے موقع به دوئ ته د امان الله خان برخلاف لمسون شوے وی۔ به هرحال چه سلیمان خیل د بچه سقه په مرسته اوددیدل۔ نو د امان الله خان لښکر د یو جنګ نه پس تیلیښته اوکړه۔ او د امان الله خان په دے شکست داسے زړه مات شو چه بیائے یو مشوره هم په غوږونو بنه نه لګیده۔ هرڅه ئے په ځائے پریښول او په چپه خوله دکوټې په لار هندوستان ته راغے۔ دامان الله خان قبائیلی لښکرچه د هغهٔ دتلو نه خبر شو نو هغوی هم بددل شول۔او تار په تار شول۔

اوس د قندهار درانیانو په خپل مینځ کښے د یو بل بادشاه د انتخاب د پاره جرګه اوکړه۔ اول د عبدالعزیز خان نوم پیش شو۔ ولے هغهٔ د دے نه انکار اوکړو۔ او بیا د علی احمد جان نوم واخستے شو۔ او هغهٔ دے پیټي ته په خوشحالئ تیار شو۔ سردار علی احمد جان اګر چه د بچه سقه په مقابله کښے څو کامیاب نهٔ شو ولے امان الله خان په شان دمیدان نه او نهٔ تښتیدلو۔ نورهم زړور شوے وو۔ اوس د قندهار نه تاؤ شو۔ او ښارئے محاصره کړو۔ په دغه وخت کښے په قندهار کښے هم دسقه یو ډله پیدا شوی وه۔ هغوی دښار دروازے سقاوی فوځ ته لرے کړے۔ دغه وخت علی احمدجان په خپله دسقاوی فوځ سره په جنګ اخته وو۔ ولے د هغهٔ اس په یو ګولئ اولګید۔ او هغه داس نه پریوتو۔ سقایانو په ښار قبضه اوکړه۔علی احمد جان ئے ګرفتار کړو۔ او په ډیرذلت ئے کابل ته ته اولیږلو۔ په کابل کښے هم د دے ځوانمرد سردار ډیره بے عزتی اوکړے شوه۔ په جیل خانه کښے ورله رنګا رنګ تکلیفونه ورکړے شول۔ او د یو څو ورځو د قید نه پس په توپه والوزولے شو۔ او په دے ډول د دے سردار د ژوندانه ژوند خاتمه اوشوه۔

د سردار علی احمد جان پلار د امیرشیر علی خان وزیر وو۔ د امیرشیر علی خان نه پس چه امیر عبدالرحمان دکابل په تخت قبضه اوکړه۔ نو د علی احمد جان پلار د خپل آل و عیال سره د سردار ایوب خان په ملګرتیا کښے هندوستان ته راغے۔ او د هغهٔ سره په راولپنډئ کښے ډیره شو۔ سردار علی احمد جان په راولپنډئ کښے د میټرک پورے تعلیم حاصل کړو او چه کوم وخت امیر حبیب الله خان خپله یو لور هم سردار احمد جان ته په نکاح ورکړه۔ د امیرامان الله خان او د دے سردار تعلقات څه خوشګوار نهٔ وو۔ ولے دمخالفت باوجود د اکثرو خلقو دا خیال وو چه که سردار علی احمد جان په سمت مشرقی کښے کامیاب

شوے وے نو هغهٔ په دکابل تخت امان الله خان ته پرینبودلے وو۔ د بچه سقه دلاسه چه سردار علی احمد جان په بے دردئ شهید شو نو ددهٔ په شهادت د هندوستان مسلمانانو هم د رنج و غم اظهار اوکړو۔ او د مجلس خلافت په اهتمام کښے په ۱۳ ستمبر ۱۹۲۹ء د جمع په ورځ په ټول هندوستان کښے د علی احمد جان د شهادت د یادګیرنے دستوره اوشوه۔ په دے موقع د سردار نادرخان د پاره چنده اوشوه ځکه چه دغه وخت لا د هندوستان د خلقو دا خیال وو چه د تخت کابل د حصول په لړکښے د سردار نادرخان کوشش د امان الله خان د پاره دی۔

په دغه ورځو کښے جرنیل غلام نبی خان چه په روس کښے د افغانستان سفیر وو. ناڅاپه میدان ته راووتلو۔ او په ترکستان کښے ئے سید حسین ته په مخه پرله پسے شکستونه ورکړل۔ او د بامیان پورے علاقه ئے اونیوله۔ د هغهٔ سره یوڅو هوائی جهازونه هم وو۔ ددے جهازونو په حقله روسی حکومت دا وئیل چه دا جهازونه د بغاوت نه وړاندے شاه امان الله قیمتًا اخستی وو۔ ولے لا تر دے وخته حکومت روس افغانی حکومت ته حواله کړی نهٔ وو۔ لیکن غالب ګمان دا دے چه دا جهازونه هم د روسی حکومت وو۔ او د امان الله خان په حمایت کښے ئے جرنیل غلام نبی خان ته ورکړی وو۔ ولے چه امان الله خان د ملک نه اووتلو۔ نو جرنیل غلام نبی خان هم نور جنګ جاری اونهٔ ساتلو۔ او بیرته لاړ۔ د هغهٔ د تلو نه پس سید حسین بیا په ترکستان قبضه اوکړه۔ دغه وخت کښے په هرات او قندهار هم د سقاوی حکومت قبضه راغلی وه۔

په دغه ورځو کښے د سمت مشرقی، جنوبی او هزاره جات نه علاوه په نور ټول ملک د بچه سقه حکومت قائم شوے وو۔ ولے په دے مفتوحه علاقو کښے دفوځ ساتل ضروری وو۔ په دے جنګو نو کښے شل پنځویشت زره سپاهیان مړهٔ شوی هم وو۔ بیا هم د بچه سقه سره ډیرش زره فوځ موجود وو۔ لیکن په ټول ملک باندے د تسلط قائمولو د پاره د یو لوے فوځ ضرورت وو۔ بچه سقه به خپل ټول فوځونه دکوه دامان او کوهستان د علاقے نه مرتب کول دا د هغهٔ خپل خلق او خپله علاقه وه۔ او په دوئ د هغهٔ اعتماد وو۔ دغه وجه وه چه ددے علاقے نه هغهٔ کم و بیش اتیا زره سپاهیان بهرتی کړی وو۔ او په دے وجه ددے علاقو افرادی طاقت ته لوئے زیان رسیدلے وو۔

په دغه وخت کښے په ظاهره کښے د بچه سقه په لاره کښے هیڅ بندیز نهٔ ښکاریدلو۔ امان الله خان د ملک نه وتلے وو۔ سردار علی احمد جان وژلے شوے وو۔ او د سردار غلام

ے زمیندار لاہور، ۱۳ ستمبر ۱۹۲۹ء۔

نبي خان هم څه درک نهٔ لګيدهٔ. او دا سے معلوميده چه په ټول ملک به د بچه سقه اقتدار قائم نشي. البته په دغه ورځو کښے سردار نادر خان په سمت جنوبي کښے داخل شوے وو. تر دے وخته بچه سقه ددے خبرے انتهائي کوشش کولوچه د نادر خان حمايت حاصل کړي په دے غرض هغهٔ نادر خان ته د صدارت عظمیٰ عهده پيش کړه. او د هر قسم مراعاتو وعدے ئے ورسره اوکړے. او تر آخره په دے کوشش کښے لګيا وو چه نادرخان په خپله پره جنبه راواړوي. ولے داد نادرخان د پاره يو ناممکن کار وو. نادرخان د شاهي کورنۍ يو فرد او يو ډير باعزته، قابل، مدبر او د نوم نشان او تدبر خاوند وو. د هغه غيرت به داخبره څه رنګ برداشت کړي وه چه هغه دِ د يو غل حکومت په ځان اومني. او د هغهٔ مرستے او حمايت ته د غاړه کيږدي. به هر حال چه بچه سقه د نادرخان د مرستے د حاصلولو نه نا اميده شو نو د هغ نه پس ئے خپله توجه د سمت جنوبي په لور اوګرزوله.

لکه چه مو وړاندے وئيلي دي د افغانستان په دوېم جنګ کښے نادرخان د ټل اوکرُم په محاذ جنګيدلے وو. او هم ددهٔ د برياليتوب او علاقائي تدبيرونو په وجه دا جنګ دافغانستان په کاميابۍ ختم شوے وو. نادرخان او امان الله خان په خپلو کښے ډير نزدو خپلوان وو. امير امان الله خان د حکومت په ابتدا کښے د دواړو ترمينځه تعلقات خوشګوار وو. ولے د دوئ دا تعلقات په خپل حال پاتے نهٔ شول. نادرخان د صحت د خرابۍ په بناد فوځۍ فرائضو نه استعفیٰ ورکړه. او امان الله خان هغه په رسمي طور په فرانس کښے د افغانستان سفير مقرر کړو. ولے څه موده پس ئے د سفارت نه هم استعفیٰ ورکړه. او په فرانس کښے ډيره شو. په کومو ورځو کښے چه په افغانستان کښے د امان الله خان برخلاف انقلاب اوشو. او بچه سقه د ملک په يوحصه کښے اقتدار حاصل کړو نو د غه وخت هغهٔ د نادرخان يو تربور په هغهٔ پسے فرانس ته اوليږلو. او نادرخان ئے افغانستان ته راوبللو چنانچه نادرخان د فرانس نه راروان شو. اوکراچۍ ته راغ.

په هندوستان کښے بالعموم او د صوبه سرحد په پښتنو کښے بالخصوص د خپلو سياسي خواهشاتو د تکميل په دوران کښے امان الله خان ډير شهرت او مقبوليت موندے وو. او د دے خلقو د هغهٔ سره ډير اخلاص او عقيدت پيدا شوے وو. او د دے وجه د ملک سياسي حالات وو. په دغه ورځو کښے په ټول هندوستان کښے سياسي تحريکاتو بالخصوص دکانګرس تحريک زور نيولے وو. دانګريزي حکومت رويه د صوبه سرحد د پښتنو سره د هندوستان د نورو صوبو په نسبت ډيره نامناسبه وه. دا صوبه په دے ورځو کښے د "سرزمين بے آئين"

په نامه یادید له. دغه وجه وه چه د هند خلقو بالعموم او د صوبه سرحد خلقو بالخصوص د خپلو سیاسی خواهشاتو د تکمیل په سلسله کښې د امان الله خان په عروج او ترقۍ کښې یو رڼا لیدله. او د امان الله خان په سیوری کښې د افغانستان د عروج او ترقۍ سره دے خلقو د خپلې سیاسی آزادۍ توقعات وابسته کړی وو. دغه وجه وه چه کوم وخت امان الله خان ته خلاف توقع دا لوے مصیبت شو نو د صغه د امصیبت د هند او صوبه سرحد مسلمانانو خپل مصیبت اوګڼلو او چونکه په دغه وخت دوئ د انګریزانو غلامان وو او امان الله خان سرهٔ سوا د اخلاقی امداد او همدردۍ نه عملاً نور څهٔ امداد نهٔ شو کولے. نو دوئ به د افغانستان د هر با اثره شخصیت نه دا توقع لرله چه هغه دِ د خپل اثر و نفوذ ټول قوتونه د امان الله خان په مرسته کښې صرف کړی

او دا توقع دوئ د سردار نادرخان نه هم کوله. په هند او صوبه سرحد کښې د امان الله خان د دے مقبولیت نه نادرخان هم ناخبره نهٔ وو.

په ۲۴ فروری سنه ۱۹۲۹ء سردار نادرخان د افغانستان په نیت د کراچۍ نه پېښور را روان شو. هم په دغه ورځ د لاهور په ریلوے سټېشن مولانا ظفر علی خان د مجلس خلافت د یو لیډر په حیثیت د هغهٔ سره ملاقات اوکړو. او د هغهٔ نه ئے د هغهٔ د ارادو په باب کښې پښتنه اوکړه. سردار نادرخان د دے په جواب کښې دا اووئیل چه "زما دا اراده ده چه زهٔ به تر هغه وخته ارام نه کوم. ترڅو چه ے د کابل تخت د بچه سقه نه نهٔ وی راستون کړے. او امان الله خان ته ے نهٔ وی ورکړے" په دغه ورځ او په دغه ګاډی کښې مولانا ظفر علی خان هم د هغهٔ سره پېښور ته راغے. بله ورځ په پېښور کښې د مجلس خلافت د یو وفد سره مولانا ظفر علی خان بیا د نادرخان سره ملاقات اوکړو. په دے ملاقات کښې مولانا د نادرخان نه دا استدعا اوکړه چه هغه دِ اول قندهار ته لاړ شی. او د امان الله خان سره دِ مشوره اوکړی. او دیو متفقه پروګرام مطابق دِ کار شروع کړی. مولانا هغهٔ ته دا هم اووئیل چه زهٔ په دے وینا کښې د هند د ټولو استوګنو د خواهش ترجمانی کوم. د دے په جواب کښې نادرخان هغهٔ ته اووئیل چه کوم خواهش د هندوستانیانو دے هغه خواهش زما هم دے. یعنی د کابل په تخت باندے د امان الله خان متمکن کول. ولے هندوستانیانو ته پکار دی چه د مقصد د حصول طریقه دِ هغوی زما په مرضۍ پرېږدی. زهٔ یو داسے طریقه اختیاروونکے یم چه د دے په وجه به د افغانستان په وقار کښې زیاتے راشی. زما صحت خراب دے. او د یو څو ورځو د ارام نه پس به د خپلو ورونو سره مشوره کوم او بیا به روانیږم.

حاشیه په صفحه ۸۲۵

هم په دے دول د پېښور د قيام په دوران کښې د صوبه سرحد د مشرانو وفد چه په خان عبدالغفار خان، مياں جعفر شاه، سيد آغا لعل بادشاه او خان علي گل خان او نورو مشرانو مشتمل وو د نادر خان سره اوليدل۔ دغه شان د اسلاميه کالج پروفيسرانو او طالب علمانو يو وفد د پروفيسر شيخ محمد تيمور په مشرئ کښې د نادر خان سره ملاقات اوکړو۔ د دے وفدونو سره د ملاقات په موقعه په صريحو الفاظو کښې هغهٔ دا وعده کړې وه۔ چه هغه به د تخت افغانستان په حصول کښې د امان الله خان سره پوره مرسته کوی۔

لکه چه پورته اوويلے شول۔ د هندی مسلمانانو او صوبه سرحد د پښتنو دا زبردست خواهش وو چه نادر خان دِ دَ امان الله خان سره د تخت کابل په حصول کښې مخلصانه تعاون اوکړی۔ او د دے په ثبوت کښې دے خلقو د نادر خان نه دا توقع ساتله چه هغه دِ اول قندهار ته لاړ شی او د امان الله خان سره دِ ملاقات او مشوره اوکړی۔ ليکن نادر خان د امان الله سره ملاقات ته تيار نهٔ وو۔ د هغهٔ په خيال کښې د تخت کابل د حصول يو جدا پروګرام وو۔ ليکن هغه په دے موقع خپل پروګرام څرګندولو ته تيار نهٔ وو۔ څکه چه دا سے به هغه د هندی مسلمانانو او صوبه سرحد د پښتنو د همدردئ او اخلاقی مدد نه محرومه شوے وو۔

د تخت کابل د راستنولو او هغه امان الله خان ته د حواله کولو په حقله چه د امان الله خان همدردانو کوم توقعات د نادر خان سره وابسته کړی وو۔ هغه محض په خوش فهمئ مبنی وو۔ د نادر خان په کورنئ کښې د تخت کابل د حصول خواهش څه په دے موقع نهٔ وو پيدا شوے بلکه دا ډير پخوانے او د دے بنياد د دے نه سل کاله اګاهو د امير دوست محمد خان او سردار سلطان محمد خان د وخت نه ايښے شوے وو۔ او لکه چه وړاندے ويلے شوی دی۔ کوم وخت چه دوست محمد خان په کابل قبضه اوکړه نو د هغهٔ د قندهار او پېښور ورونو دا نهٔ غوښتله چه دوست محمد خان دِ دومره اقتدار بيا موی چه په نورو بالادستی حاصله کړی۔ ليکن د ورونو د مخالفت باوجود نهٔ صرف دوست محمد خان کابل په خپله قبضه کښې اوساتلو بلکه په ټول ملک ئے قبضه اوکړه۔ او د سردار سلطان محمد خان او د هغهٔ قندهاری ورونو نه هر څه لاړل۔ ليکن د دے باوجود د سردار سلطان محمد خان د

---

(حاشيه صفحه ۸۲۴) له اخبار زميندار ۳ر مارچ ۱۹۲۹ء

زړهٔ نه نهٔ خو د دوست محمدخان مخالفت لرے شوے وو۔ او نهٔ د هغهٔ د زړهٔ نه د پښتنو ارمان وتلے وو۔ د امان الله خان او نادرخان په وخت کښے هم د دوئ تعلقات خوشگوار نهٔ وو۔
او د دے انقلاب په وخت کښے د امان الله خان هم د نادرخان په دے وینا یقین نهٔ وو چه گوندے نادرخان به تخت کابل حاصل کړی او هغه به لئے په چپه خولهٔ امان الله خان ته او سپاری۔

د دے خبرے اظهار امان الله خان په بمبئ کښے د مولانا ظفرعلی خان سره هغه وخت کړے وو کوم وخت چه هغهٔ د حکومت باٹیلودلو نه پس یورپ ته روان وو۔ په دے موقع هغهٔ دا وئیلی وو۔ زما دا توقع نشته چه نادرخان به ماله د افغانستان تخت بیرته راکړی:
نادرخان د یو سوړ دماغ او لوئے تدبر خاوند وو۔ ترڅو چه امان الله په قندهار کښے موجود وو۔ نو هغهٔ خپلے ارادے په واضحو الفاظو کښے به نه ښکاره کولے۔ ځکه چه په دے صورت کښے به د امان الله خان طرفدارانو د هغهٔ د مرستے نه انکار کړے وو۔ او د هغهٔ په لار کښے به ډیرے مشکلات پیدا شوی وو۔ او داسے به د هغهٔ کامیابی گرانه شوی وه۔ په دے بنا دا وئیل به بے ځایه نهٔ وی چه د تخت کابل فیصله هغهٔ د واقعاتو رفتار ته پریښی وه۔ که چرے په امان الله خان مایوسی نهٔ وے غالب شوے او هغهٔ د میدان نه ځان نهٔ وے او ښکلے نو امکان کیدے شو چه په دے حالاتو کښے هغه کامیاب شوے وے۔
بچه سقه چه د قندهار د مهم نه فارغ شو نو د سمت جنوبی نه ئے د نادرخان د اوښکلو اراده اوکړه۔ د هغهٔ دا منصوبه وه چه یو طرف ته په سمت جنوبی کښے د خوست پورے خپل فوځونه خواره کړی۔ او په بل لور په سمت جنوبی کښے هم د کابل په لور د هغهٔ لار بنده کړی۔ په دے غرض هغهٔ څه فوځونه سمت مشرقی ته هم اولیږل۔ د دے فوځ په راتلو د نادرخان ورور سردار محمد هاشم خان په دے علاقه کښے موجود وو۔ هندوستان ته راواوتښتیدهٔ۔ سقاوی فوځونه په سمت جنوبی کښے هم د گردیز نه وړاندے شوی وو۔ او د خوست په لور روان وو۔ او که چرے په دے موقع نادرخان ته د وزیرو قبائیلو امداد نهٔ وے حاصل شوے نو دا یقینی وه چه د سقاوی فوځونو د لاسه به هغه هم په هندوستان کښے په پناه اخستلو مجبور شوے وو۔ ولے څه رنگ چه د بچه سقه د لاسه د امان الله خان تښتیدل یو حیران کن واقعه وه۔ د غه شان د بچه سقه په مقابله کښے د نادرخان کامیابیدل

دهغه نه زيات حيران کړي وو.

نادر خان دخپل پروګرام مطابق دپلينبور نه دکرمې په لار په افغانستان کښې داخل شوے وو. او په سمت جنوبي کښې دخوست په علاقه کښې استوګن وو. په ابتدا کښې هغه دتيراه دافريدو او اورکزو نه دلښکر د حاصلولو کوشش اوکړو. افريدی او اورکزو دواړو قبائيل د امان الله خان د مرستې په غرض د هغهٔ سره په کابل باندے حملے ته تيار شول. ولے دا قبائيلي لښکر انګريزانو پرے نښو. ددے نه پس هغهٔ محسودو قبائيلو ته وفدونه اوليږل. محسود قبائيل د امان الله خان په وينا په ۱۹۱۹ء کښې هم د انګريزانو سره جنګيدلی وو. دا ټل هم دوئ د امان الله خان په حمايت کښې ملا اوتړله. د دوئ سره ځنې احمد زی وزير هم شامل شول. د وزير محسودو دا لښکر د سردار شاه ولی خان په ماتحتۍ کښے د سقاوی فوځونو نه په يوے دوه په غزونو او دروکښې د لوګر په لار کابل ته روان شو. د دوئ په مرسته کښې د ځاځي قبيلے يو بل لښکر د شاه محمود خان په کمان کښې هم روان شوے وو. کوم لښکر چه د شاه ولی خان په ماتحتۍ کښے تلے وو. د لوګر په خوا او شا کښې د سقاوی فوځونو سره د هغې مقابله راغله. په جنګ کښې سقاويانو تيښته اوکړه. او شاه ولی خان د خپل لښکر سره د کابل خوا اونيوله. بچه سقه د کابل نه ګير چاپيره ټولے غونډۍ ښې مضبوطے کړی وے قبائيلي فوځ د رسيدو سره سم د کابل د مشرق او جنوبي لوری نه زبردستې حملے شروع کړے. او د دوئ د کاميابۍ دا توقع پيدا شوه. اګرچه قبائيليان په دغه ورځ څو کامياب نهٔ شول. ولے په کابل د دوئ قبضه يقيني شوه. نيمه شپه قبائيلي لښکر بيا حمله اوکړه. او د يو مختصر جنګ نه پس سقاوی فوځونو تيښته اوکړه. او سحر بيا په ښار د قبائيلو قبضه شوی وه. بچه سقه د خپلو ملګرو سره په ارګ کښې محصور وو.

په ملک کښې د بچه سقه پنځوس شپيتهٔ زره فوځ موجود وو. او دا خطره وه چه شايد ددے فوځ په رارسيدو به په کابل بيا د سقاويانو قبضه اوشي. ولے دغه وخت قبائيلي لښکر ے دلوټ نه نور هرڅه هير کړی وو. نهٔ ے جنګ ياد وو. او نهٔ بچه سقه. دغه وجه وه چه بچه سقه د سمت شمالی سره خپله رابطه قائمه کړه. او ددے نتيجه دا شوه چه بله ورځ د سقه يو فوځي افسر په کابل حمله اوکړه. دغه وخت قبائيلي لښکر بيا لوټ پريښو او توپک په لاس د جنګ ميدان ته روان شول. د يو خونړی جنګ نه پس سقاوی فوځ بيا تيښته اوکړه. بچه سقه د نادر خان د کورنۍ ټول افراد په ارګ کښې قيد کړی وو. غرض ے دا وو چه د دوئ د موجودګۍ په وجه به په ارګ باندے ګوله باری او نهٔ شي. واقعي چه دا د يو لوئے

ازمیښت موقع وه۔ د بمبارۍ په صورت کښې د نادرخان د خاندان د تباه کيدو خطره وه۔ ليکن دوئ دے ذاتي نقصان ته او نۀ کتل۔ شاه ولي خان په ارګ باندے دګوله بارۍ حکم اوکړو۔ او اوله ګوله ئے په خپله اوچلوله۔ ددے په جواب کښې د ارګ نه هم ګوله باري شروع شوه۔ ليکن د دے باهمي ګوله بارۍ په نتيجه کښې په ارګ کښې په ميګزين اور اولګيد۔ دغه وخت د بچه سقه معامله نرمه شوه۔ او هغۀ د نادرخان د کورنۍ د يو فرد په ذريعه د ارګ نه د وتلو خواهش سردار شاه ولي خان ته پيش کړو۔ د بچه سقه دا خواهش اومنلے شو۔ او هغه سره د خپلو ملګرو او آل و عيال د «ارګ» نه د سمت شمالي په لور لاړو[1]۔

په ارګ کښې هم قبائيلو په لوټ لاس پورے کړو۔ اګرچه په ميګزين اور لګيدلے وو۔ بے شانه ګولۍ به خلاصيدلے۔ ولے قبائيليان د مرګ نه بے پرواه په ګډا نڅا او ډيرے خوشحالۍ په لوټ کښې لګيا وو۔ او څه چه به ئے مونډل هغه به ئے زغلول۔ دغه وخت په کابل کښې د هيڅ حکومت نۀ وو۔ بچه سقه د کابل نه تښتيدلے او نادرخان ته د فتح زيرے ليږلے شوے وو۔ او هغه په ډيرے تادۍ د کابل په لور راروان وو۔

د کابل په خلقو يو ټل بيا طوفان راغے۔ څه رنګ چه د سقه په وخت کښې د سقاويانو د لاسه دا اولس تر نيولے وو۔ اوس د قبائيليانو د لاسه سقاويان او د هغوی مرستيال اودرديدل۔ بچه سقه چه د ارګ نه اووتلو نو جبل السراج ته لاړ۔ او هلته د سيد حسين په انتظار کښې کښيناست۔ د کابل خلقو د نادرخان راتلو ته دوه سترګے ټلو کړے وے۔ دغه وخت د هيچا دا توقع نۀ کيدله چه ګوندے نادرخان به د امان الله خان د تخت نشينۍ اعلان اوکړی۔ او هم دغه شان اوشوه۔ نادرخان کابل ته راورسيد او د خپلے تخت نشينۍ اعلان ئے اوکړو[2]۔ او د اقائے شير احمد خان چه د ملائے شور بازار کشر ورور وو په مکان کښې مقيم شو۔ ځکه چه په ارګ کښې لا هغه شان اور لګيدلے وو۔ د شير آقا په مکان کښې ديره کيدل ددے قياس مرسته کوی چه هغۀ د خپلے تخت نشينۍ فيصله د اول نه کړی وه۔

د نادرخان د دے اعلان په وجه نۀ صرف په افغانستان کښې بلکه په هندوستان کښې هم د امان الله خان د طرفدارانو جذباتو ته ډيره صدمه اورسيدله۔ او د نادرخان په دے رويه ئے ډير خفګان ظاهر کړو۔ چنانچه مولانا ظفر علي خان د هندوستان د هندوانو او مسلمانانو د لورى نه د نادرخان په خدمت کښې د تار برقي په ذريعه دا پيغام اوليږلو۔

---

[1] ۸ر اکتوبر سنه ۱۹۲۹ء
[2] ۱۶ اکتوبر سنه ۱۹۲۹

« زهٔ ستاسو په خدمت کښې د دے تاریخي فتح په موقع چه تاسو د وحشي سقاویانو برخلاف حاصله کړې ده . او چه د هغې په نتیجه کښې تاسو یو فاتح او بریالی په دول په کابل کښې داخل شوئ د زړهٔ د اخلاصه مبارکبادي پیش کوم . او د دے سره به دا هم اووایم چه زما په دے خبره هرګز یقین نهٔ شي کیدے چه تاسو د افغانستان د حکومت واګې په خپل لاس کښې د اخستلو فیصله کړې ده . ځکه چه د افغانستان د تخت جائز او حقیقي حقدار ستاسو ولي نعمت غازي امان الله خان دے . که چرے تاسو واقعي دا فیصله کړې وي نو په دے به ستاسو هغه ټول مخلصانه کوششونه ، وعدے او لوظونه بالکل غلط ثابت شي . کوم چه تاسو څو ځله ورانده کړې وو . او د دے لوظونو او وعدو منشا دا وه چه د تاسو د ټولو کوششونو او سرګرمیانو واحد مقصد دا دے چه په تخت افغانستان د اعلیٰ حضرت امان الله خان دوباره راوستلے شي . ستاسو په دے فیصله به ستاسو ټولے کامیابۍ عبث لاړے شي . او ستاسو هغه عالمګیر شهرت چه د هغې په بنا تاسو د میخځنۍ ایشیا یو لوئے مدبر او د درست ذهن مالک ګڼلے شئ . په خاورو کښې دفن شي . زهٔ د هندوستان د هندوانو او مسلمانانو د یو ترجمان په حیثیت د اخپل فرض ګڼم چه ستاسو د فهم و تدبر نه دا خواست اوکړم چه اول د دے نه چه تاسو دا سے قسم څه کار اوکړئ چه د هغې تلافي بیا ورو ستو ګرانه شي او د هغې په وجه به افغانستان د بورو بورو کشالو په مینځ کښې ګیر شي . په خپلې فیصلې یو ځل بیا غور اوکړئ . هندوستانیان او د درست ذهن و فکر خاوندان ټول پښتانهٔ د اعلیٰ حضرت امان الله خان د بیرته راغوښتلو خواهشمند دي . موږ یو ځل بیا د تاسو وعدے تاسو ته در یادوو[۱] . »

معلومه نهٔ ده چه مولانا ظفرعلي خان ته به د نادر خان د لوري نه د دے تار برقي څه جواب ورکړے شوے وي . البته په افغانستان کښې هم دا سے خلق موجود وو چه دا اعلان د هغوي د توقعاتو نه خلاف وو . او هغوي دا د امان الله خان حق تلفي اوګڼله . د کابل د فتح نه څه لږ ورځے اول د امان الله خان مرستیال د بچه سقه برخلاف بغاوت کولو ته تیار شوي وو . خلقو کښې وسله تقسیم شوې وه . او ټول انتظامات برابر شوي وو . لیکن سمدستي قبائلي پښتنو په کابل حمله او بیا قبضه اوکړه . او د هغه خلقو منصوبه په عمل کښې رانغله د نادر خان په دے اعلان د امان الله خان د طرفدارو خفګان او مایوسي اګرچه یو قدرتي

---

[۱] روزنامه زمیندار لاهور ۱۷ ر اکتوبر سنه ۱۹۲۹ء

خبره وه- ولے دے ته هم فکر پکار دے- چه نادر خان هم د شاهی کورنئ یو فرد او د هغه ټولی یو غړے وو چه د هغو په عروج او لوړتیا کښے د امان الله خان لویه برخه وه- او اګرچه د جماعتی وفادارئ دا تقاضا وه چه په انتهائی ترغیبانوکښے ډیهم دا وفاداری متزلزل شوے نهٔ وے ولے د دنیا عام روش او قاعده دا ده چه په داسے موقعوکښے چه د چالاس ته کو نتئ راشی نو د میښے خاوند هم هغه شی-

د تخت نشینئ د اعلان نه پس نادر خان قبائیلی لښکر د بچه سقه په تعاقب کښے د سمت شمالی په لور اولیږلو- دغه وخت په کابل کښے نهٔ خو د حکومت فوځ وو- او نهٔ خزانه وه- او د قبائیلو موجودګی په ښارکښے د هغهٔ په خیال کښے د خطرو نه خالی نهٔ وه. بچه سقه د سید حسین په انتظارکښے په جبل السراج کښے مقیم وو- اخر سید حسین د لس زره فوځ سره راورسید- د سید حسین فوځ په قلا کښے دیره شو- او بچه سقه او سید حسین د ائنده اقداماتو په غرض په صلاح مشوره کښے ګکیا شو- ولےچه سحر شو نو د سید حسین ټول فوځ په خپله خپله مخه تلے وو- او د یو څو سپاهیانو نه بغیر نور څوک پاتے نهٔ وو- دے واقع د سید حسین او بچه سقه په امیدونو یخ اوبهٔ توئے کړے- او هغوی د نادر خان د یو فوځی افسر په ذریعه د خپلو ځانونو او د خپلو دوستانو د سر د امن په وعده وسلے کښېښودلو ته تیار شو- دا وعده ورکړے شوه- او دوئ دواړه د خپلو اهمو ملګرو سره کابل ته راو ستلے شول- د شیر اقا په مکان کښے دوئ د نادر خان سره ملاقات اوکړو- په دے موقع بچه سقه نادر خان ته داسے اووے:-

" زهٔ تاله داسے راغلے یم څهٔ رنګ چه یو بهادر سړے بل بهادر ته ورځئ- خدائے پاک ماله ورځ راکړی وه- ما په دے ملک نهه میاشتے بادشاهی اوکړه- او ن ئے هغه بادشاهی زما نه واخسته- تاله ئے درکړه- اوس نهٔ په شوق خپله بادشاهی کوه- دا ملک تا په توره ګټلے دے- او د دے بادشاهی اوس د تا حق دے"

د دے نه پس بچه سقه چپ شو او سید حسین بچه سقه ته دا اووے " واخله لالا[1] ! دا د ستا هغه د نائب السلطنتئ مُهر، او دا دِ هغه د وزارت حربیه مهر- او دا درېم د ترکستان د رئیس تنظیمه مُهر- واخله دا درے واړه مهرونه دِ سمبال کړه-

---

[1] سید حسین به بچه سقه ته لالا وئیل.

د دے نه پس د دے مهرونو سره بچه سقه هم خپل خاص د بادشاهئ مهر شامل کړو. بیا پا څیدو. او دا مهرونه ئے نادرخان ته حواله کړل. د دوئ په خیال کښے دا د سلطنت د انتقال یو آئینی دستوره دوئ ادا کړه.

په دریمه ورځ بچه سقه او د هغهٔ ملګری ارګ ته اولیږلے شول. او په یو مضبوط برج کښے قید کړے شول. نادرخان د دوئ سره د جان بخشئ وعده کړی وه. ولے دا همے یو بهانه وه. د بچه سقه او د هغهٔ ملګری ژوندی پرے سبو دل د سلطنت او امن عامه د پاره یو لویه خطره وه. نادرخان د وعداه خلاف‌ئ د الزام نه د ځان بچ کولو په خاطر دا اوویئل چه زما او زما د خاندان د طرف نه بچه سقه او د هغهٔ ملګرو ته جان بخشی ورکړے شوی ده. البته زهٔ د جرګے په رائے کښے حائل کیدل نهٔ غواړم. د هغوی خوښه ده که زما سره اتفاق کوی او که دوئ ته سزا ورکوی. دا خو همے د ظاهرداری خبرے وے. جرګے د هغوی د وژلو فیصله اوکړه. او بچه سقه د خپلو یوولسو ا همو ملګرو سره چاند ماری کړے شو. او دغه شان د بچه سقه د نهه میاشتیز حکومت خاتمه اوشوه. د بچه سقه او د هغهٔ د ملګرو لاشونه تر دیرو ورځو په شاهی سړک بانده په اونو پورے اویزان وو. او خلقو به ئے تماشه کوله.

د سقاؤ دا انقلاب د افغانستان د خلقو په باب کښے د خدائے یو لوئے عذاب وو. په دے عرصه کښے په خلقو بے شانه ظلمونه شوی وو. سقاویان د رحم او انصاف نه نا اشنا وو. لیکن ظالم سړے اکثر بزدل هم وی. دے ظالمانو ته به په بے وسه او بے ګناه خلقو باندے ظلمونو کولو خوند ورکولو. او د مظلومانو په ژړا فریاد، چغو چغارو او لوڅو پوڅو پورے به ئے توقے او ټچموڼے کولے. ولے په خپله چه بچه سقه او د هغهٔ ملګری د چان ماری په غرض روان کړے شول. نو په دوئ کښے هر یو د مرګ نه وړاندے مړ وو. هر یو سقاوی به دا سے معلومیدو لکه چه ساه ترینه وتلی وی. او دوئ دا خبره رښتیا کړه چه " بے غیرته مړ هم شی او د بے غیرتئ یاد ئے هم پاتے شی "

دے انقلاب د افغانستان حکومت دا سے رچکولے وو چه په هغ باندے د یو نوی حکومت د عمارت ابادولو د پاره د لوئے صبر، استقلال او همت ضرورت وو. د نهو میاشتو دے خونړی انقلاب نهٔ خو د حکومت په وجود کښے څه وینه پرینښی وه. او نهٔ د خلقو په وجود کښے. د حکومت خزانه تالا شوی وه. حکومتی عمارتونه

وران شوی وو- ټوله اسلحه برباده شوی وه - سرکونه وران شوی او پلونه‌نه تباه شوی

پیدا فراتفری کښې د ملک تجارت، زراعت، صنعت و حرفت هر یو څیز ته لویه صدمه رسیدلی وه- دامیرامان الله خان په لس کلیزعهد حکومت کښې چه کومه شاندار ه ترقی شوی وو. او کوم تعمیری کارونه چه سرته رسیدلی وو- هغه هرڅه تباه وبرباد شوی وو- د نادر خان په مخکښې دداسې افغانستان د سر دوباره تعمیر وو- او دے د پاره دلوئے همت او تدبر ضرورت وو- لیکن په دے کښې شک نشته چه نادرخان د دے ډیرګران او لوئے کار د پاره په هر لحاظ موزون وو-

# نادرشاه سنه ۳۳-۱۹۲۹

د تخت نشینۍ نه پس نادرخان د نادر شاه په نامه مشهورشو ـ د ده په تخت نشینۍ د افغانستان د محمدزو او د پائنده خیلو په کورنۍ کښې د یوې نوې خانګې حکومت شروع شو ـ د نادرخان مشر نیکه سردار سلطان محمد خان هم د سردار پائنده خان ځوئ وو ـ د سردار سلطان محمد خان پښتوس ځامن وو چه د یو نامه په کښې یحیٰ خان وه ـ د غه وجه ده چه د نادرخان کورنۍ د یحیٰ خیلو په نامه هم یادیږی ـ د نادرخان د پلار نامه یوسف خان وه چه د یحیٰ خان ځوئ وو ـ

نادرخان د امیر حبیب الله خان په وخت کښې د یو فوځی کرنیل په حیثیت د خپلے زندګۍ آغاز اوکړو ـ او د خپل ذاتی قابلیت او تدبر په برکت د جرنیلۍ عهدے ته اورسیدو. د امیر امان الله خان په زمانه کښې چه په کال ۱۹۲۴ء کښې منګل قام بغاوت کړے وو ـ دا بغاوت هم د نادر خان په تدبر، فوځی مهارت او جانفشانۍ ختم کړے شو ـ او د دے خدمت په بدل کښې د سالارۍ په عهده او تاکلے شو ـ ولے وروستو د ده او د امان الله خان تر مینځه تعلقات خوش ګوار پاتے نهٔ شول ـ لکه چه په تیرو پاڼو کښې د هغے ذکرشوے دے ـ

د تخت نشینۍ نه پس نادرشاه د ملک ودانۍ ته توجه اوکړه ـ او په دے لړکښے ئے د ډیر زیار او کوشش نه کار واخست ـ د ملک د عوامو د تائید او حمایت حاصلولو په غرض ئے مجلس شورئ ملی تاسیس کړو ـ د بیرونی ملکونو سره ئے سر دوباره تجارتی او سیاسی تعلقات قائم کړل ـ د تګ راتګ د وسیلو او ذریعو په لورے سمدستی توجه اوکړه ـ په ملک کښے ئے امن وامان قائم کړو ـ د بچه سقه د انقلاب په وخت کښې چه د ملک د مختلفو قبائیلو تر مینځه کومے دشمنۍ او ترېګنۍ پیدا شوے وے ـ هغه ئے لرے کړے ـ او د ملک د ودانولو په لوئے کارکښے لګیا شو ـ

د ملکی اصلاحاتو په حقله هغهٔ یو میانه روانه پالیسی اختیار کړه ـ د هغهٔ داخیال وو چه

دا صلاحاتو کار دِ په داسې طریقه جاري وي چه نمائش دِ ئې ډیر کم وي چه خلق پرې او نهٔ پاریږي۔ په دې لړکښې په فروري ۱۹۳۲ء کښې د نوي دستور اعلان اوکړے شو۔ دا دستور قریب قریب د ۱۹۲۳ء د دستور په شان وو۔ ولې په دې کښې دوه ایوانونه تجویز شوي وو۔ د یو مجلس د پاره به د ملک ممتاز افراد نامزد کیدل۔ او د بل مجلس د پاره به د ممبرانو انتخاب کیدلو۔ د مجلس شورائے ملي د افتتاح په موقع چه اعلیٰ حضرت نادرشاه مرحوم کوم تقریر کړے وو۔ د هغې نه د هغهٔ د حکومت سیاسي پالیسۍ څرګندیږي۔

د مجلس شورائے ملي د افتتاح په موقع هغهٔ دا تقریر کړے وو:۔

" د قادر او توانا الله تعالیٰ په نوم چه د هغهٔ ذات د دنیا او اخرت د نیک بختۍ بخښونکے دے۔ زهٔ د دې مجلس شورائے ملي افتتاح کوم او د الله پاک په دربار کښې د افغانستان د حکومت او افغان ملت د پاره د توفیق خواست کوم چه هغه د حضرت محمدؐ د پاک شریعت د سیورې لاندې دې پاکې خاورې ته عزت او بزرګي ورکړي۔ د دې د پاره چه د دین د ترقۍ او کلمة الحق د سربلندۍ په لړکښې افغانستان ته کامیابي حاصله شي۔

زما عزیزانو! د الله پاک شکر ادا کوم چه زهٔ نن په دوئم ځل افغانستان د نفاق او خانه جنګۍ د مصیبتونو او کړاونو نه محفوظ او په امن کښې وینم۔ او د زړهٔ په اطمینان او اسودګۍ سره د دې مجلس شورائے ملي د بنیاد کیښودلو دستوره کوم۔ په دې موقع زهٔ دا غواړم چه د شورائے ملي معنیٰ واضحه کړم۔ په دې غرض چه تاسو د دې حقیقت نه واقف شئ۔ شکر دے چه موږ ټول مسلمانان یو او موږ ته د قرآن حکیم حکم دا دے چه:۔ وَ شَاوِرْهُمْ فِي الْاَمْرِ ۚ فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى الله (راے نبيؐ! ته د خپلو ملګرو سره مشوره کوه او چه د کار اراده اوکړے نو بیا په خدائے پاک اعتماد ساته) زموږ د ټولو کارونو بنیاد په مشوره دے۔ او د دې د پاره موږ مکلف وو۔ اوس هم مکلف یو او بیا به هم یو۔ زموږ حضرت محمد صلی الله علیه وسلّم به د مسائیلو په حل کولو کښې د خپلو ملګرو سره مشوره کوله۔ خلفائے راشدینو به هر کار په مشوره کولو۔ خلفائے عباسیه به هم په اهمو کارونو کښې مشوره ضروري ګڼله۔ چنانچه د قام وکیلان به د خلفائے عباسیه په دربار کښې موجود وو۔ او وکلائے ملت به حکومت ته په ټولو کارونو کښې مشورے ورکولې۔ د عباسي خلیفه ګانو نه پس مسلمانانو بادشاهانو د مشورے قدرو قیمت کم اوګڼلو۔ ځکه چه دوئ دا د خپل اقتدار منافي ګڼله۔ او په دې وجهے د ترقۍ دے بنیاد (مشورے) ته توجه کمه کړه۔ او د دې نتیجه دا شوه چه په لږه موده کښې په عالم اسلام کښې تغیر و تبدل واقع شو۔

په افغانستان کښې د ډېرې مودې نه د شورئ اصول قائم دي. چنانچه د پښتنو جرګې د په نظر کښې د افغانستان د پاره د حاکم عادل حيثيت لري. شورئ زموږ د قام د پاره څه نوې څيز نه دے. تيرو بادشاهانو اګرچه د قام په مشورو عمل نه وو کړے. ولې قام په خپل قبيلوي ژوند کښې جرګې مرګې تر اوسه نه دي پريښې. او په قبائيلو کښې لا تر اوسه د جرګو حکم چليږي. امان الله خان (د افغانستان بادشاه) د شورئ ملي مجلس تشکيل کړے وو او د ا تمام مشران به په مرکز کښې حاضريدل ليکن هغه شورئ يا جرګه د افغانستان د پاره څه مفيده ثابته نه شوه. خير موږ د خدائے پاک نه د ا غواړو چه د اسې د بد بختئ ناوړه واقعات دِ بيا په افغانستان کښې او نه شي او د ا موجوده شورائے ملي دِ موږ او تاسو ته د ا موقع پيدا کړي چه د ملت او حکومت تر مينځه کيلے او شکايتونه موږ لرے کړو. د ن زمانے د ستوري او شورئ حکومتونه چه د زمانے د تيريدو سره ترقي کوي. د ا زموږ د نوي دستوري حکومتونو يو نمونه ده. اګر چه افغان ملت تر اوسه پورے د د اسې قسم څه څيز خواهش نه دے کړے. ليکن چونکه ما د مملکت د اصلاح او ترقئ ذريعه هم دغه شورائے ملي ګڼله او اوس ئے هم ګڼم. دغه وجه ده چه ما په اول ځل د شورائے ملي د قيام اعلان اوکړو.

د خدائے پاک ډير شکر دے چه ما په دے پرامن فرصت کښې د دے د افتتاح توفيق بيا موند. کوم وخت چه تاسو د شورائے ملي د حقوقو د کتابګئ مطالعه اوکړئ هغه وخت به تاسو ته معلومه شي چه د دے شورائے او وړاندينو جرګو په مينځ کښې کوم فرق وو. که چرے تاسو باقاعده خپل حقوق استعمال کړئ او هميشه د حکومت د روش او رفتار نګرانئ کوي. او هميشه اصلاحاتو د پاره کوششونه کوي نو د ا پارليمنټ به د افغانستان د امن او امان او د مملکت د ترقئ او پرمخ تګ بنياد ثابت شي او زۀ د خدائے پاک نه د ا اميد کوم چه د ملک نه به خانه جنګئ او بې اتفاقئ د هميش د پاره ورکے شي. د حکومت د ا تبديلي د ملک و ملت د استيصال او بيخ کنئ سبب ګڼل نه دي پکار. د دے ملک زمام داران او حکمران به هميشه رښتوني نيک او محسن حاکمان وي. او د افغانستان په خدمت کښې به هر وخت ګټيا وي. او استبداد، بدعت نوازي او رشوت ستاني به د دے ملک نه د هميش د پاره ورک شي.

په کومه ورځ چه د ملک وکيلان په شورائے ملي کښې خپل حقوق او پيژني او د مفاد عامه په دول په خير و شر کښې امتياز اوکړے شي. او خود غرضئ او تفرقه د مينځ نه لرے شي هغه وخت به د افغانستان د نيک بختئ د دور اغاز اوشي. زما دعا ده چه زموږ او ستاسو د وطن د نيک مرغئ دغه ورځ دِ هم دغه ن ورځ شي. چه د شورائے ملي د افتتاح دستوره پرے

کیږدی - خدای پاک لوی مهربان، کریم او قادر دے چه هغه په لږه موده کښې افغانستان د یو خونړی انقلاب نه خلاص کړو - او افغان ملت ته یے سر دوباره عزت، امن، طاقت او توانائي او بخښله - زه د الله تعالیٰ د بخششونو نه نا امیده نه یم او پوره هیله لرم چه تیر انقلاب به د همیش د پاره ختم شي - د افغانستان د شورای ملي د افتتاح د ورځ به د افغانستان د نیک مرغئ د دور روزِ اول ثابت شي چه انشاء الله تل به قائمه وي -

ښاغلي وکیلانو! تاسو نا امیده کیږئ مه - په موږ او تاسو چه د ظلمت او تاریکئ کوم دور تیر شوے دے - د قامونو په تاریخ کښې د دغه مثالونه موندلے شي - دا د سختئ نه پس اسانی ده - او د تنزل نه ارتقاء لازمي - په دے شرط چه د خدای پاک بندیان د حقیقت او انسانیت دلارے نه بے لارے نه شي - او عیب ته هنر او هنر ته عیب او د تنزل اسباب د ترقئ وسیلے او نه گڼي -

زما ورونو او کشرانو! د دے دور واقعات زه په خپله تاسو ته بیانوم - کوم چه د افغانستان خارجي سیاست سره تعلق لري - په دے وجه چه د خارجي سیاست په رڼا کښې تاسو موجوده حکومت او پیژنئ - باقي نورے مسئلے چه په دے لس اته میاشتے کښې واقع شوي دي - هغه به صدر اعظم او نور وزیران ستاسو په وړاندے بیان کړي - زه دا غوارم چه په افغانستان کښې د داخلید و نه تر دے وخته چه د خارجي حکومتونو سره ما کوم خط وکتابت کړے دے د هغے نه تاسو اگاه کړم - په دے غرض چه د تاسو نه زما سیاسی پالیسي پټه پاتے نه شي. کوم وخت چه ما د افغانستان په زمکه قدم کیښود هغه وخت ما شاه محمود خان او شاه ولي خان په سمت جنوبي کښې او هاشم خان او گل محمد خان په سمت مشرقي کښې متعین کړل - د غه وخت لا په سمت جنوبي کښې د بچه سقه څه اثر و نفوذ نه وو خور شوے - او هیچا په سقاوي حکومت اعتماد نه کولو - لیکن امان الله خان د قلات غلزای په حدود کښې ښکاره شو او په علاقو کښې یے په کابل باندے د حملے اراده ښکاره کړه - په دے خبره د سمت جنوبي خلق متردد شول - هغوی داگمان اوکړو - چه زه د خپلو ورونو سره د امان الله خان په حمایت او مرسته کښې گوندے کوششونه کوم - اگرچه ما هغوی ته په صفا لفظونو کښې اووے چه زما تعلق د یو شخصیت سره هم نشته تر دے چه زه او زما ورونه هم دلته د خپل شخصیت د اثر قاشولو په غرض نه یو راغلي - بلکه زموږ د راتلو مقصد دا دے چه په افغانستان کښې د امن قائم شي او خانه جنگی د ورکه شي - او کوم سړے چه د افغانستان ملت او قامونه خوښ کړي هغه به بادشاه وي - لیکن د دے باوجود هم د سمت جنوبي خلق مطمئن نه شول - او

اوزما په دے تشریح د هغوی تسلی او نهٔ شوه ـ ځکه چه زهٔ مجبور وم ـ او دټول افغانستان دراځ او اعتراف نه بغیرے دځپلے بادشاهئ اعلان نهٔ شوکولے ـ

اګرچه افغانستان ته پرله پسے مایوسئ او شکستونه وردو ټارشوی وو ـ ولے زهٔ د خداځ په اسره په ځپل کارکښے لګیا وم ـ د سمت جنوبي د اکثرو خلقو په فکرونو کښے انتشار پیدا شوے وو ـ او په سمت جنوبي کښے سقاویانو کامله غلبه موندلې وه ـ دګردیز او خوست په اکثرو ټاټوبو کښے دهغوی برے حاصل کړے وو ـ دغه وخت ما دا اراده اوکړه چه د سرحد د ازادو قبائیلو نه مدد واخلم ـ چنانچه ما د اورک زئ قبیلے نه مرسته او غوښتله ـ ددے قوم رابطه زما سره دانګریزانو په ذریعه قائمه وه ـ په دے وجه ما د حاجي محمد اکبرخان په واسطه د برطانوی حکومت هند سره خبرے اترے اوکړے ـ حکومت برطانیه په دے باب کښے زموږ ملګرتیا اونهٔ کړه ـ او د غیرجانبدارئ عذرئے پیش کړو ـ اواورک زو ته ئے د لارے ورکولو اجازت ورنهٔ کړو ـ د برطانئ ددے مضمون په حقله هغه خط زموږ سره محفوظ پروت دے ـ ولے ددے باوجود زهٔ ناامید نهٔ شوم ـ او کارمے جاری اوساتلو ـ

(ځاځي) چه یو غیرتی قوم دے او ورسره منګل او احمد زی زما په طرف وو ـ موږ دا فیصله اوکړه چه د وزیرو قبائیلو نه مرسته حاصله کړو ـ دا قام زما مدد او د افغانستان نجات ته تیار ولاړ وو ـ په دوئ کښے اسلامی ورورولئ او اسلامی غیرت جوش وهلو ـ وزیرو زما دعوت اومنلو ـ او زما خوا ته راغلل ـ په دے سلسله کښے برطانوی حکومت په ما ډیره سختی اوکړه ـ حاجي مرزا اکبرخان هم په دے خبره ډیر اصرار اوکړو چه د ځاځیانو نه دِ وزیرلرے کړے شي ـ ما دعبدالغنی خان په ذریعه دچمن په لار دقندهار قبائیلو په نوم اعلانات او خطوط لیږلی وو ـ دا ټول د قندهار او اچک زو ته اورسیدل ـ البته حکومت هند دعبدالغنی خان په لاره کښے بندیزولیږولو او هغه ئے دوراندے تلو نه منع کړو ـ د قندهار قبائیل هم زما مرستے ته تیار شول ـ او په سمت جنوبي کښے زما دحکم په انتظار کښے وو ـ دانګریزانو داعتراضونو باوجود چه وزیر دِ پاره چنارته ولے واپس نهٔ کړل ـ ما شاه ولی خان ، شاه محمود خان او محمدګل خان چه د وزیرو قبائیلو سرکرده رهنمایان وو ـ او ځاځي ، منګل ، ځدران ، احمدزی ، خوګی خیل او ګردیزیان دځان سره واخستل ـ او په کابل ئے دحملے اراده اوکړه ـ دغه وخت حکومت برطانیه لا د وزیرو واپسئ د معاملے په حقله مطمئن شوے نهٔ وو ـ چه کابل فتح شو ـ خلاصه دا چه د کابل د فتح نه اول د برطانئ او زما ترمیځه دوزیرو په باب کښے ډیره پیچیدګی او کشیدګی وه ـ زهٔ

د تقدیر نه مجبور وم چه د پښتنو د هر قام او قبیلے نه امداد حاصل کړم. دغه وخت زما په خیال کښے د یچه سقه ظلمونو او د برطانیۓ د پکو څه اهمیت نهٔ لرلو. ځکه چه، زما داراده وه چه یا خود عزت ژوند او یا خپل ځان او خپل خاندان د مرګ په حواله.

دکابل د فتح نه پس اصل غرض خلقو ته دا پروپیګنډه کوله چه ګوندے په سمت جنوبي کښے برطانیۓ زما څه مدد کولو. او ما د حکومت برطانیه ته څه امتیازی حقوق ورکړی وو. نن زهٔ دملت د وکیلانو په وړاندے د دے خبرے اعلان کوم چه د خدائے پاک په فضل او د افغانستان د اولس د جانثاری نه بغیر ما د بل یو طاقت په مدد کابل نهٔ وے فتح کړے. د خدائے پاک په خاص فضل او د افغانی ملت غیرت وحمیت نه ما ته د وطن د نجات توفیق حاصل شوے دے.

هغه افراد او قامونه چه د امانی حکومت سره مخالف وو. او دغه شان هغه وزیران او د عسکرومامورین، روحانی خلق او د قام نور عزیز خلق کوم چه د امان الله خان د ضرر رسانو اعمالو سره موافقت نهٔ لرلو. د هغوی دا مخالفت د وطن د بهترۍ او د قام و وطن په نیک مرغۍ مبنی وو. د هغوی دا غرض وو چه امان الله خان د ناعاقبت اندیشانه حرکاتو او شهرت پسندانه خواهشاتو نه منع کړی. لیکن امان الله خان د یو څو کوتاه اندیشو په لمسون دملت مشورے شا ته او غورزولے. او خلق ئے د ځان نه متنفر کړل. او د وطن د دے خادمانو اثر رسوخ ئے زائل کړو. چه دوئ به هر وخت د وطن د پاره خپله سینه ډال کړی وه.

زما عزیزانو! څه وخت چه دا اصل عرضی خلقو دا خوشی خبرے اوړم نو په ما ډیر اثر اوشی. په افغانستان کښے زما سیاست یو راز نهٔ دے بلکه هغه ښکاره دے. زهٔ غواړم چه هره خبره رښه کړم. په دے غرض چه تاسو د ټولو حالاتو نه خبر شئ. او په خپلو کارونو پوهه شئ. کوم وخت چه کابل ته رااورسیدم او ستاسو ملت په ډیر اصرار زهٔ خپل بادشاه منتخب کړم نو وزارت خارجه په ټوله دنیا کښے د دے اعلان اوکړو. د وزارت خارجه د اعلان نه پس ټولو دوستو مملکتونو د مبارکبادۍ پیغامونه رااولیږل. او د موجوده حکومت دمنلو اعتراف او اعلان ئے اوکړو. د دولت ترکیه سفیر په کابل کښے موجود وو. او د دولت شوروی سفیر کابل ته رااورسید. د دے نه علاوه نورو دوستو مملکتونو پرله پسے د افغانستان دربار ته خپل سفیران رااولیږل. ما د بین المللی قوانینو د اصولو په بنا د هغه ټولو معاهدو تصدیق اوکړو. کوم چه سابق حکومت د دوستو مملکتونو سره کړی وے. د دے نه علاوه ما د نور هیچا سره څه پټه معاهده نهٔ ده کړی.

البته تیر کال څنې متعاهد حکومتونو زما امداد اوکړو - چنانچه برطانوی حکومت دڅه شرط نه بغیر د یو لک پنځه اویا زره پونډه قرضه د سود نه بغیر راکړه. اولس زره ټوپکې او پنځوس زره کارتوس ئې هم راکړل - چونکه دا امداد د هر قسم شرائطو نه پاک وو. نوما د شکریئ سره قبول کړو - امان الله خان هم موټرے او د ټیلیګراف تارونه وغیره د حکومت برطانیئ نه حاصل کړی وو - او د ملا عبدالله په جنګ کښې ئې هم پنځه زره ټوپک او کار توسونه د حکومت هند نه قبول کړی وو - ما چه تر دے وخته د بیرونی سیاست په لړ کښې څه کړی دی هغه مے واضح کړل - او زۀ تاسو ته دا یقین درکوم چه زما حکومت تر اوسه پورے چا ته خاص حقوق او امتیازات نۀ دی ورکړی - او تر څو چه زۀ ژوندے یم انشاء الله زما د قلم نه به په داسے څیزونو هرګز دستخط او نۀ شی - او خپل حکومت او ملت ته هم زما دا مشوره ده چه د افغانستان جغرافیائی حالت په یو وخت کښې هم د پټ سیاست برداشت نۀ شی کولے - موږ ته پکار دی چه د پټ سیاست نه پرهیز اوکړو.

د هغه وسلے نه علاوه چه حکومت برطانیه ما ته د بخشش په ډول راکړی وه ملیونس زره ټوپک او یو کرور لس لکه کارتوس د سلطنت فرانس نه هم اخستی دی - چه د هغې قیمت نهه زره نغد او نور به په قلاره قلاره ورکولے شی - حکومت جرمنی هم موږ سره دوستانه سلوک کړے دے - چنانچه هغه باقی مانده قرضه چه کومه حکومت جرمنی امان الله خان ته ورکړی ده - د هغې د اداٸیګئ معیاد ئې د شپږو کالو نه اَتۀ کاله کړے دے - دولت جرمنی موږ ته پنځه زره ټوپکې او پنځوس لکه کارتوس هم راکړی دی - او د دے قیمت ئې هم په هغه قرضه کښې شامل کړےدے چه په اَتۀ کاله کښې به اداکیږی - د دے وسلے نه علاوه چه پورته ذکر شوه د انګلستان نه هم ما پنځه زره ټوپکې او پنځوس لکه کارتوس اخستی دی او د هغې قیمت نغد ورکړے شوے دے - هم په دے ډول نورو دوستو مملکتونو هم په مناسب قیمت موږ ته وسله راکړی ده.

د جاپان او افغانستان تر مینځه معاهده شوی ده - د سویټ روس او افغانستان تر مینځه هم د غیر جانبدارئ معاهده بیا سر دوباره شوی ده - د افغانستان او ایران ترمینځه د سرحد په باب کښې موافقت راغلے دے - د روس سره به موږ په تجارتی معاهده کښې هم شاملیږو - د افغانستان او حجاز تر مینځه د معاهدے خبرے اترے کیدونکی دی - خلاصه دا چه څه شوی دی یا څه نور کیدونکی دی - هغه ټول ستاسو په وړاندے بیان شول - بیا هم بعض خبرے زۀ دوباره بیانول غواړم - د ټولو نه غوره سیاست چه افغانستان د پاره

کیدے شی دغه دا دے چه د ټولو دوستو ملکونو او ګاونډیانو ملکونو سره هغه خبرے اخذ کړے شی کومے چه دافغانستان د مفاد و نه وی - او خپلو ګاونډیانو ته دِ په عمل سره دا یقین ورکړی چه افغانستان به د جانبینو د موازنے لحاظ کوی - او د خپلو ګاونډیانو سره به دوستانه او د برابرۍ سلوک کوی - او آئنده به هم داسے کوی - دغه څیز دافغانستان د پاره هم او د هغۀ د ګاونډیانو د پاره هم مفید دے.

دا مسئله هم ډیره لوئے ضروری ده چه د ازاد سرحد مسئله د افغانستان او برطانیۀ د سیاست د پاره خاص اهمیت لری - افغانستان د حکومت هند او د سرحدی قبائیلو د باهمی روش نه غافل نۀ دے - په دے وجه زۀ دا غواړم چه د دے مسئلے په حقله خپل خیالات ظاهر کړم - د سرحد قبائیل او موږ مسلمانان یو او د قومیت په اعتبار سره یو څیز یو - دولت برطانیه دغه همدردی چه د سرحدی قبائیلو دافغانستان سره او د افغانستان د سرحدی قبائیلو سره ده - د ډیرو کالونو راسے لیدلی او تجربه کړی ده - موږ په هیڅ وجه د دے همدردۍ نه انکار نۀ شو کولے - ځکه چه د سرحد ازاد پریشانی په افغانستان باندے اثر انداز کیږی - په دے وجه موږ د سرحدی قبائیلو د نیک مرغۍ او خوشحالۍ همیشه ارزو مند یو -

معزز وکلاۓ ملت ! ستاسو موجوده سیاست ما په ډیر تفصیل سره بیان کړو ځکه چه تاسو په قطعی ډول خبردار شئ او د هرے مسئلے بنۀ جاج واخلئ - د مملکت په کارونو کښے بے پروائی لویه ګناه ده - تاسو په دے مجلس کښے د یو لوئے قوم د تقدیر فیصله کوونکی یئ - د تاسو سهوه او خطا به په شخصی سهوه او خطا کښے نۀ شی شمارلے بلکه د هغے خمیازه به ټول ملک او قام اوچتوی - تاسو په بنۀ شان دا اولیدل چه د وړاندینی حکومت ناعاقبت اندیشانه پالیسۍ او په خیر و شر کښے د عدم تمیز په وجه قوم ته څومره نقصان او تکلیف اورسیدلو - هره ورځ د دے قوم په لاره کښے مشکلات پیدا کول که خیانت نۀ دے نو څه دی ؟ چونکه ستاسو حکومت د مشورے اهمیت تسلیموی او دا غواړی چه همیشه دِ حکومت نه داسے کارونه صادر کیږی چه په هغے سره د خداۓ پاک رضا او د هغۀ د مخلوق خوشحالی حاصله شی - په دے وجه زۀ نن په ډیرے خوشحالۍ د مجلس شوراۓ ملی دا فتتاح دستوره کوم - او هیله لرم چه د دے نه پس به د نورو لوړو مطالبو د حصول د پاره یو مجلس اعیان هم تشکیلولے شی - زۀ خپل حکومت او عزیز ملت په خداۓ[1] سپارم او د هغۀ نه د کامیابۍ خواست کوم -

---

[1] اخبار الجمعیت دهلی ۵ , اګست سنه ۱۹۳۱

لکه چه تیرو پاڼو کښے وئیلی شوی - د افغانستان او برطانوی هند د حد بندئ په حقله د امیر عبدالرحمان په زمانه کښے په کال ۱۸۹۳ء کښے یوه معاهده شوی وه چه د ډیورنډ لائن په نامه مشهوره ده - د دے معاهدے تصدیق د امیر حبیب الله خان په زمانه کښے هم شوے وو . او لکه چه د نادرشاه مرحوم د دے افتتاحی تقریر نه ظاهره ده چه هغه په خپل عهد حکومت کښے هم د بین الاقوامی اصولو په رڼا کښے د امان الله خان د عهد حکومت د ټولو معاهدو د تصدیق وتسلیم اعتراف و اقرار کړے دے - او دا ظاهره ده چه په دے معاهدو کښے د ډیورنډ لائن معاهده هم شامله ده - د دے تقریر نه علاوه د نادرخان د تخت نشینئ نه پس د ډیورنډ لائن د معاهدے تصدیق په لندن کښے په ۶ ,مئ سنه ۱۹۳۰ء د برطانوی وزیر خارجه او افغان سفیر مقیم لندن ترمینځه د خطونو په ذریعه هم شوے وو - او دواړو حکومتونو د دے خپلو با اختیاره افرادو په ذریعه د دے معاهدے صحت او استحکام تسلیم کړے وُو[۱]-

لکه چه اووئیلے شول نادرخان د قبائیلو په مرسته په کابل قبضه اوکړه - او بیائے د خپلے تخت نشینئ اعلان اوکړو - د کابل د مهم په وخت کښے د محسودو وزیرو او نورو قبائیلو سره د لویو انعامونو وعدے او لوظونه شوی وو - ولے د دے خونړی انقلاب د کابل حکومت داسے تالاکړے وو چه د حکومت په خزانه کښے سره پیسه نهٔ وه پاتے - د نادرشاه سره خپل ذاتی دولت هم نهٔ وو - چه دا قبائیل ئے د وعدے مطابق خوشحال کړے وے - نو د انعاماتو خبره کړه وډه شوه - اگرچه د انعامونو کے څو ترڅه حده قبائیلی لښکرو د "کابل ښار او ارګ" په لوټلو پوره کړے وو - ولے بیا هم ډیر داسے وو چه په لوټ کښے هغوی ته برخه نهٔ وه رسیدلی - یا کمه رسیدلی وه - نو دے خبرے د قبائیلو په هغه اعتماد کښے کوم چه دوئ د نادرخان د ذات سره وابسته کړے وو کے راوستو - د اعتماد په دے تزلزل کښے تخت کابل باندے د نادر خان د قبضے په وجه نور هم زیاتے پیدا شو - او د دے نتیجه دا شوه چه قبائیل په کوم شوق او مینه د نادرخان سره کابل ته تلی وو، په هغه شان شوق او مینه کښے خوشحال را نغلل - بلکه د دوئ په زړونو کښے خیرے پیدا شوے وو - د قبائیلو د دے زړه بداوی نه هغه خلقو فائده واخستله کوم چه د امان الله خان ملګری وو - او په تخت کابل باندے هغوی په خپل خیال کښے د نادرشاه قبضه ناجائزه ګڼله - د نادرشاه دا مخالفین په وزیرو محسودو کښے خواره شول او دوئ ئے یو ځل بیا د کابل لوټلو او د حکومت تختے اړولو ته او

---

۱ دی پټهان (مسترکیرو) ص ۴۶۵

پارول - چنانچه د وزیرو محسودو یو لوئ لښکر په کال ۱۹۳۳ء کښې د کابل د حملې په عزض تیار شو - ولې انګریزانو د خپلو سیاسی مفادو په رڼا کښې د امان الله خان په تخت کابل باندې دوباره راتلل نه‌ښه‌ګڼل - نو د عیر جانبداری په نوم ئې د قبائیلو دا لښکر د کابل د حملې نه منع کړو - ولې دا قبائیل تر دې حده د کابل حملې ته پاریدلی وو چه په خبرو اترو منع نه‌شول - نو انګریزی حکومت په دوئ د هوائی جهازونو نه بمباری اوکړه - او په دې وجه دا لښکر خور شو - او د امان الله خان د مرستیالو مراد ترسره نه‌شو - او هرکله چه دوئ د قبائیلو د امداد نه قطعی مایوس شول - نو اخرئ حمله کار اوکړو چه د مایوسئ په حالت کښې ئې هر څوک کوی - یعنې د کال ۱۹۳۳ء په اخر کښې عبدالخالق نومې یو طالب علم د لاسه د تقسیم اسناد د یو جلسې په موقع شهید کړې شو - (۸ ر نومبر ۱۹۳۳ء)

# اعلیٰ حضرت ظاهر شاه

## د سنه ۱۹۳۳ء نه پس

د نادر شاه مرحوم نه پس د هغهٔ ځوئ اعلیٰ حضرت ظاهر شاه د هغهٔ جانشين شو. او د خپلو نوميالو ترونو په امداد او مرسته ئې د خپل حکومت په باب کښې د خپل پلار دانش مندانه، ترقي پذير او معتدله پاليسي جاري اوساتله. په سنه ۱۹۳۹ء کښې د امريکې يوې کمپنۍ. مس "Land exploration co" ته ئې په افغانستان کښې د (۷۵) کالو د پاره د تيلو د تلاش وتحقيق ټيکه ورکړه. په جولائي سنه ۱۹۳۷ء کښې د افغانستان، عراق، ايران او ترکيه په مينځ کښې د باهمي اتحاد يو معاهده اوشوه. د دې معاهدې مقصد دا وو چه د لويو يورپي طاقتونو د دباؤ برخلاف د دې اتحاد نه کار واخستلې شي.

د امان الله خان مرستيال په دغه ورځو کښې هم په قلار نهٔ وو. د يورپ د دوئم جنګ شروع کيدو نه اول دوئ يو ځل بيا د قبائيلو په ذريعه په افغانستان کښې د انقلاب راوستلو کوشش اوکړو. په دې لړ کښې د يورپ محوري طاقتونه هم د دوئ ملګري وو. په دې غرض محوري طاقتونو د شام يو عرب چه د بغداد نقيب ګيلانئ کورنۍ سره ئې تعلق لرلو. په سنه ۱۹۳۷ء کښې د محسودو علاقې ته د جاج اخستلو په غرض رااوليږلو. دا سړے بل کال په سنه ۱۹۳۸ء کښې د ډيرمال و دولت سره د محسودو علاقې ته راغې. او د کانيګرم په خوا او شا کښې ديره شو. د دهٔ دا مقصد وو چه وزيرا او محسود قبائيل په کابل باندې حملې ته اوپاروي. دا سړے په قبائيلو کښې د "شامي پير" په نامه مشهور شو. او چونکه د بزرګۍ د آوازه سره ئې د سخاوت او لنګر آوازه هم خوره شوې وه. نو ډير زر په قبائيلو کښې مقبول شو. د ده شهرت پولټيکل افسرانو ته هم اورسيد. او هغوی د دهٔ په سرګرميانو شکمن شول. چونکه په يورپ کښې د مخدوشو حالاتو پيش نظر دا ګړ بړ انګريزانو د خپلو مفادو برخلاف ګڼلو. نو د شامي پير د منصوبې په ناکام کولو کښې لګيا شول. شامي پير خپل مراد ته نژدې شوے وو. او د وزيرو محسودو يو لښکر په کابل باندې حملې ته تيار ید وئکے وو. چه "شامي پير" د انګريزانو

په لاس کښې گير شو. دا پير چه د پيرئ په لوبه کښې کامياب نهٔ شو نو نوره پرده ئې په ځان وانهٔ چوله. او د پيرئ هغه جُبه، عمامه او تسبيح ئې اوغورزولے. دبزرگئ څرګنده نخښه ږيره ئې اوخرئيله. او خپل ځنوانئ مغربي لباس ئې دربرکړو. په دے مغربي لباس کښې انګريزانو د خرئيلي ږيرے سره ددهٔ تصويرونه اوښکل. او بيا ئې ددهٔ د زړو تصويرونو سره چه د پيرئ په جامه کښې اوښکلي وو يو ځائے په قبائيلو کښې تقسيم کړل. په دواړو تصويرونو کښې دومره فرق وو چه دا هډو چا منله نه چه په دے نوی جامه کښې دا سړے هم هغه شامی پير دے. به هر حال د شامی پير منصوبه ناکامیابه شوه. (جون ۱۹۳۸ء). او افغانستان يو ځل بيا د قبائيلو د يلغار نه بچ شو. د يورپ په دوئم جنګ کښې افغانستان غير جانبدار پاتے شو. د جنګ په دوران کښې په يوهموقع حکومت روس او حکومت برطانيئ د حکومت افغانستان نه دا مطالبه اوکړه چه د خپل ملک نه جرمنيان او اطالويان لرے کړی. چنانچه حکومت افغانستان ځه دا سے موزون بندوبست او کړو چه دا خلق ئې خپلو ملکونو ته اورسول.

لکه چه وئيلے شوی دی. اعلیٰ حضرت ظاهرشاه د خپل مرحوم پلار په تقليد کښې د ملک د ترقئ ډير خواهشمند دے. د ملک په دے هر اړخيزے ترقئ کښې د هغهٔ د نوميالو ترونو د کوششو نو هم يوهبرخه ده. د نادر شاه مرحوم په تخت نشين کيدو د صدر اعظم عهده ښاغلی سردار محمد هاشم خان ته سپارلی شوی وه. نوموړے په دے عهده اوولس کاله پاتے وو. د دے نه پس سردار شاه محمود خان صدر اعظم شو.

په ۱۹۵۳ء کښې سردار داوُد خان چه د نادر شاه مرحوم وراره او د سردار عبدالعزيز خان ځوئے دے صدر اعظم شو. او نهه کاله په دے عهده پاتے شو. په موجوده وخت کښې ښاغلے ډاکټر محمد يوسف خان وزيراعظم دے. افغانستان په صنعت، تجارت او بين الاقوامی سياست کښې د خپل ځان د پاره يو ځلانده مقام حاصل کړے دے. او د ژوند په هر اړخ کښې مخ په وړاندے روان دے. په ملک کښې د پارليمانی نظام حکومت د قيام انتظامات هم شروع دی. او توقع کيدے شی چه په لږه موده کښې به د عوامو په ووټونو د منتخب وزيرانو په ذريعه د حکومت اداره تياره شی.

د بده مرغه د پاکستان په لور د افغانی حکومت رويّه په ابتدا کښې نهمدردانه وه. د قيام نه پس اگرچه د دواړو ملکونو ترمينځه سفارتی تعلقات قائم وو. ولے دا دومره خوند ناک او مضبوط نهٔ وو. څه رنګ چه د دوو اسلامی او نزدو ګاونډی ملکونو ترمينځه

پکار وی۔ اوکله کله څو په دې تعلقاتو کښې ډېر ترینګوالی هم پیدا شوې او قطع شوی هم دی۔

پاکستان او افغانستان دواړه اسلامي او ډېر قریبي ګاونډي ملکونه دي۔ د دواړو ملکونو د اولس تر مینځه ژور تاریخي، تهذیبي او ثقافتي روابط د پخوا نه قائم راغلي دي۔ دا یو تاریخي حقیقت دې چې د پاکستان اولس په هر دور کښې د افغانستان په حقله همدردانه او د خیر سګالۍ جذبات ظاهر کړي دي۔ د دواړو ملکونو خوشحالي او سوکالي د دوئ تر مینځه په مخلصانه او دوستانه تعلقاتو کښې مضمره ده۔ پاکستان د زړه د اخلاصه دا خواهش لري چې د خپلو ګاونډي ملکونو بالخصوص د اسلامي ملکونو سره بهترین او خوشګوار تعلقات اولري۔ او په دې لړکښې د یو کوشش نه هم دریغ نهٔ کوي۔ او ددې څرګند ثبوت دا دې چې د ټولو اسلامي ملکونو سره د پاکستان د موجوده حکومت ډېر ژور دوستانه تعلقات قائم دي۔ پاکستان په هره موقع افغانستان ته هم د دوستۍ لاس وراوږد کړې دې۔ اوس اوس بیا ددې دواړو اسلامي او ګاونډي ملکونو تر مینځه د څه مودې د سیاسي او تجارتي تعلقاتو د انقطاع نه پس سفارتي او تجارتي تعلقات دوباره په دوستانه او مخلصانه بنیادونو قائم شوي دي۔ او په دې کښې ورځ په ورځ زیاتے راځي۔ الله پاک دِ د دې دواړو ملکونو ذمه وارو افرادو ته دا توفیق ورکړي چې د اسلامي ورورولۍ او باهمي اخلاص په رڼا کښې دا تعلقات دومره مضبوط کړي چې د زمانے یو طوفان ئے هم پرے نهٔ کړے شي۔ (آمین)

# د شمال مغربي سرحدي صوبې

# تشکیل

لکه چه په تیرو پاڼوکښې وښودلې شوي دي په سنه ۱۸۴۹ء کښې د سیک ریاست د سقوط نه پس د پښتنو علاقه هم د انګریزانو په ولقه کښې راغله - دا علاقه تقریبًا هم هغه وه چه وروستو د شمال مغربي سرحدي صوبې په نامه مشهوره شوه - په دغه وخت کښې د کابل د حکومت او برطانوي هند ترمینځه د حد بندۍ بین الاقوامي برېده نه وه قائمه شوې - او د دواړو حکومتونو د مقبوضه علاقو ترمینځه چه کوم پښتانه قبائیل آباد وو - هغوی د دواړو حکومتونو د اثرونفوذ نه آزاد وو - او د دې پښتنو دا علاقه به علاقه غیر یا د یاغستان په نامه یادېدله -

د انګریزانو د حکومت نه اګاهو اګرچه د پښتنو په میداني علاقو د سیکانو او درانیانو حکومتونه تیر شوي وو - ولې نه څو په دې علاقو د دې حکومتونو څه مؤثر اقتدار قائم وو - او نه د دې حکومتونو د خپل طرف نه په دې علاقو کښې څه منضبط آئین و قوانین جاري کړي وو - د سیکانو د حکومت څو دا حال وو چه دوئ به خپله مالیه هم بې د فوځي کومک نه نه شوه وصولولې - دغه وجه وه چه اکثر به دوئ د پښتنو د علاقې مالیه د پښتنو سردارانو نه د جاګیر دارۍ په ډول وصولوله - د دوئ د مالئ څه حساب کتاب او څه اندازه هم نه وه - او هم د دې غیر مستقل حالاتو په وجه سیکانو په دې علاقه د خپل حکومت څه مستقل تعمیري یادګار نه دې پرېښې - سوا د اطالوي جرنیل "بیټیابل" د ظلمونو د یاد نه چه هغه په دې علاقه د سنه ۱۸۳۸ء نه سنه ۱۸۴۳ء پورې د خپلې ګورنرۍ په ...ان کښې په دې خلقو کړي وو - او یا د هري سنګه نلوه د هغه سختو شخړو او مقاتلو ...نتنو ته ځ ور پېښې کړي وې -

دغه شان په بل لور درانیان که د دے پښتنو هم مذهب ، هم قوم او هم نسل وو. ولے د دے علاقو د خلقو د پاره بېګانه وو - د بده مرغه درانیانو د ډیرے مودے نه پښتو ژبه هیره کړی او د پښتونولئ ضابطه ئے پریښی وه - او ځکه د دے خلقو د پاره پردی شوی وو - دوئ به په فارسئ ژبه خبرے کولے - او د هر پښتون نه به ئے دا توقع ساتله چه د دوئ سره دِ په فارسئ کښے خبرے کوی - د دے نه علاوه خپل درباری ژوند او عیش پرستئ دوئ دومره ارام طلبه او بے پرواه کړی وو چه د خلقو فریادونو او شکایتونو اوریدلو ته به تیار نهٔ وو - دوئ د خپل حکومت مقصد صرف د خلقو نه د مالیے تر وصولولو پورے محدود کړے وو - د دوئ په وخت کښے به د خلقو مقدمے قاضیانو د شریعت د قانون په رڼاکښے فیصله کولے -

لیکن د سیکانو او درانیانو حکومتونه که د اولسی خلقو د وسیعو مفادو په حقله سنهٔ وو یا بد، دا جدا سوال دے - ولے ترکومه حده چه د دے علاقو د انتظامی معاملاتو او د دے حکومتونو تعلق وو نو خلقو په امروزه ژوند کښے د دے حکومتونو دباؤ او زور نهٔ محسوس کولو - او د دوئ له خوا د یو منضبط آئین د نیشتوالی په وجه به د پښتنو ټول معاملات هم د دوئ د پښتنی ضابطے په رڼا کښے فیصله کیدل - د دے نه علاوه د علاقه غیر د پښتنو او د مقبوضه علاقے د پښتنو ترمینځه هم نهٔ څو څه سیاسی حد بندی وه او نهٔ تجارتی او اقتصادی پابندی - له دے کبله د دواړو علاقو ترمینځه هم د پښتونولئ تعلقات قائم وو - او د غیر علاقے د پښتنو له خوا به د میدانی علاقو په پښتنو باندے د حملو او ډاکو واقعات چه وروستو بیا په انګریزی دور کښے هم د دوئ د پالیسئ په نتیجه کښے پیدا شول ډیر کم وو - او د پښتنو ترمینځه د قبائیلی او غیر قبائیلی امتیاز هم نهٔ محسوس کیدلو -

لیکن د انګریزانو حالت د سیکانو او درانیانو دواړو نه جدا وو - انګریزانو چه د هند په لویه خطه اقتدار بیا موندلو نو په برطانوی هند کښے دوئ هم هغه قوانین جاری کړل کوم چه دوئ د یورپ نه برآمد کړی وو - او د دے نه علاوه د نوی زمانے هغه ټول مفید ایجادات واصلاحات چه د ،، احیائے علوم ، په نتیجه کښے په یورپ کښے مروج شوی وو - دوئ په خپل هندی سلطنت کښے هم هغه ته رواج ورکړو - د ټک راټک د ذرائعو ترقی ، د نهرونو او آب پاشئ په لور توجه ، ډاک، تار ، ریل او داسے نور مفید ایجادات چه د خلقو د ژوند او آرام سره ئے تعلق لرلو - په هند کښے په ټله ره قادره مروج شوی او خلق د دے ترقئ نه متاثر شوی وو - او هرکله چه د انګریزانو حکومت د خیبر ترلمنو راخور شو نو دوئ هغه نظام او قوانین په دے

علاقه کښې هم جاري کړل - ولې په داسې کولو کښې انګريزانو د دې حقيقت ته بيخي توجه او نۀ کړه چه پښتانۀ د هندا د نورو خلقو نه په تاريخي ، جغرافيائي ، معاشرتي او لساني غرض په هرلحاظ جدا خلق دي - پښتانۀ د سوونو کالو نه د خپلې يو مخصوصې ضابطې لاندې په ژوند تيرولو عادت وو - او د دې په نتيجه کښې د خپلو ګوانډي قامونو سره د دوئ اختلاط او ګډون ډير کم وو - د غه وجه وه چه هرکله انګريزانو د خپل سلطنت په دې نوي حصه کښې هم هغه قوانين او ايجادات وغيره جاري کړل نو دې خلقو دې ايجاداتو او قوانينو ته د شک او شبهې په نظر اوکتل - چونکه انګريزي قوانين د دوئ د خپلې پښتنې ضابطې سره متصادم وو نو دا ئې په خپلې آزادئ يو بنديز اوګڼلو -

د خوش قسمتئ نه ، انګريزانو د خپل حکومت په ابتدا کښې د پښتنو په علاقه کښې داسې حاکمان مقرر کړل چه هغوي د خپل تدبر او اهليت په بنا په خپلو اهمو اوګرانو ذمه داريو کښې حيران کن حده پورې کامياب شول - ميکسن ، جان نکلسن ، هربرټ ايډورډ ايبټ او لمسډن وغيره داسې افسران وو چه دوئ د پښتنو د نفسياتو او قامي خصوصياتو مطالعه په ډير ژور نظر کړې او پښتو ژبه ئې زده کړې وه - دا افسران د هغه افسرانو د ډلې يوه حصه وه - کوم چه د سيکانو او انګريزانو د وړومبۍ جنګ په نتيجه کښې د انګريزي ريذيډنټ مقيم لاهور د لورې نه د پښتنو په علاقه کښې د سيکانو د فوځ او سول افسرانو د نګرانئ او مشورې په غرض مقررشوي وو - دا افسران څه رنګ چه په خپله بهادران ، د وعدې کره ، په زړۀ مضبوط ، خوشحال ارواح او قابل اعتماد وو - د غه شان دا صفتونه دوئ په پښتنو کښې هم اوليدل - او د دې نتيجې ته اورسيدل چه که پښتون قام په اعتماد کښې واخستې شي نو دوئ د اعتماد قابل دي - چنانچه د سيک رياست د الحاق نه پس چه هرکله د پښتنو د علاقې د انتظام ذمه واري دې افسرانو ته ور په غاړه شوه نو دوئ د خپلې وړانديزئ تجربې په بنا د دې لوئې کار د پاره ښۀ تيار وو - دوئ هرقدم په ډير احتياط او چټ کړو - او اګرچه د خطراتو او مشکلاتو وريځې په فضا کښې خورې وې ولې د دې نوي حاکمانو په خپل تدبر هغه د برق وطوفان شکل اختيارولو ته پرې نښوې - او ډير زر ئې د اعتماد فضا قائمه کړه - او د دې څرګند ثبوت دا دې چه انګريزانو ته د خپل حکومت په آغاز کښې د مشهور جنګ آزادي ( يا د هغې خلقو په الفاظو کښې غدر ) ۱۸۵۷ئ پورې د پښتنو په علاقه کښې څه خاص سرګرم مخالفت پيښ نۀ شو - بلکه د هندوستان په دې جنګ کښې يواځې دا نه چه پښتانۀ په دې خپله علاقه کښې په قلاره پاتې شول - بلکه د انګريزانو

قابل قدر امداد اوکړو. په دے لړکښے د پښتنو دکاشپه پلټنے کارنامے د ذکر وړ دی. دے پلټنے داوړی په سخاگرمئ کښے داوویشت میله روزانه اوسط رفتار سره دهلی ته ځان اورسولو. او د رسیدو سره سم په جنگ کښے ورګډه شوه. او د جنگ تر ختمیدو پورے په لحاظ موجود وه. د دے پلټنے هیڅ کوارټر مردان وو. په ابتدا کښے د دے د اودرولو غرض د باقاعده فوځونو امداد کول وو. لیکن وروستو ئے د یو باقاعده پلټنے حیثیت اوموندلو. دا پلټن د یوسف زو او خټکو د علاقے په ډیروټکړه، بنګلی او خط ختلی ځوانانو مشتمل وه. د افغانستان په دویم جنگ کښے هم دے پلټنے د انګریزانو د پاره ځلے وینے بیولی وے.

لکه چه اوویلے شول په ۱۸۴۹ء کښے د اباسینډ نه په قبله تړوله علاقه او د هزارے ضلع د ایسټ انډیا کمپنئ په حکومت کښے شامله شوه. مسټرمیکسن د پیښور د علاقے وړومبے کمشنر او جارج لارنس چه هم په دغه ورځو کښے د چتر سنګه ځوئے شیرسنګه ازاد کړے وو. د پیښور وړومبے ډپټی کمشنر ارنلیډ سرکولن کیمبل چه وروستو لارډ لائن شو. د پیښور ریجن چه هغه وخت په کښے د جهلم پورے علاقه شامله وه. د فوځونو کماندار اعلیٰ اوټاکلے شو. د پیښور د موجوده فوځئ چاوڼئ بنیاد دے سپاغلی افسر ایښے دے. په انتظامی لحاظ سره پیښور، هزاره، کوهاټ، بنوں، ډیره اسماعیل خان او ډیره غازی خان په دوؤ کمشنریانو کښے تقسیم شوے. او د پنجاب د نوی صوبے حصه اوګڼلے شوے. هره یوه ضلع د ډپټی کمشنر په انتظام کښے ورکړے شوه. دا ضلع د ۱۹۰۱ء پورے په پنجاب کښے شامله وے. لیکن په دغه کال لارډ کرزن د انتظامی پالیسئ په بنیاد وړومبئ پنځه ضلع د پنجاب نه جدا کړے او د شمال مغربی سرحدی صوبے په نوم ئے یوه نوی صوبه تشکیل کړه. چه تفصیلی حالات به ئے وروستو بیان شی.

د ۱۸۵۷ء د جنګ نه پس د هندوستان حکومت د ایسټ انډیا کمپنئ د تصرف نه د تاج برطانیه قبضے ته لاړ. او دغه شان د حکومت په اداره کښے هم ډیرے بنیادی تبدیلئ واقع شوے. دا جنګ چونکه د انګریزانو د توقع نه بیخی خلاف شوے وو نو د هغوی په زړه کښے دا خبره راغله چه هندوستان یو داسے ملک دے چه د دهٔ په مړ وجود کښے هم کله کله د ژوند وینه بیا جوش وهلے شی. نو د دے خطرے د لرے کولو په غرض هغوی مختلف طریقے اختیار کړے. د انګریزانو په خیال کښے دا بغاوت مسلمانانو کړے وو. نو ځکه هغوی د مسلمانانو سره ظالمانه او شرمناک سلوک رواخست. او هولناکے سزاګانے ئے ورکړے. بل لور ته هغوی په هندوانو او مسلمانانو کښے د نفاق پیدا کولو کوشش

شروع کړو ـ او په هند کښې ئې يو داسې نظام تعليم جاري کړو ـ چه د هغې په نتيجه کښې داسې تعليم يافته هندوستانيان پيدا شول چه په ختهه خو هندوستانيان وو ـ وليکن ذهنًا او روحًا د مغربي تهذيب و تمدن نه مغلوب شوي وو ـ هندوانو دا تعليم په ډيره تلوسه حاصل کړو او د حکومت په ادارو کښې ورننوتل ـ ولې مسلمانان په دې خبره کښې تر ډيرې مودې دوجاله وو ـ چه انګريزي ژبه زده کول او د انګريزي حکومت په مدرسو کښې تعليم حاصلول حلال دي ـ او که حرام ـ د دې نتيجه دا شوه چه هندوان په سياسي او اقتصادي لحاظ سره د مسلمانانو نه ډير وړاندې شول ـ

ليکن د پښتنو حالت د هندي مسلمانانو نه هم بتر وو ـ پښتانه څه خو د خپل طبعي ماحول ، قامي خصوصياتو او تمدن په وجه د انګريزي تعليم نه متنفر وو ـ او انګريزانو هم د دوئ په باب کښې جدا پاليسي اختيار کړه ـ برطانوي حکومت په يو لور د مقبوضه علاقې د پښتنو د تعليمي او اقتصادي ترقئ په لړ کښې د ډير بخل او هيلو حوالو نه کار واخست ـ او په بل لورې د کل هند د حفاظت په نامه ازاد قبائيل هم په نظر کښې واخستل ـ د پښتونو او سرحد آزاد قبائيلي علاقو ته انګريزي حکومت د افغانستان د جنګ اول نه پس سترګې خړې کړې وې ـ تر دې وخته اګرچه نه په دې قبائيلو د افغانستان د حکومت اقتدار قائم وو ـ او نه د انګريزي حکومت ـ ليکن د کابل حکومت چونکه د مسلمانانو په لاس کښې وو ـ نو د انګريزانو په مقابله کښې د کابل حکومت ته د دې قبائيلو پاروول او لسول نسبتًا آسان وو ـ د دغه وجه وه چه انګريزان په دې قبائيلو باندې د خپل اثر و اقتدار قائمولو ته ليوله وو ـ

د مغلو او بيا د دوئ نه پس د درانيانو او سيکانو په زمانه کښې به د حکومت او د علاقه غير د پښتنو معاملات د مقبوضه علاقې د پښتنو خانانو او ملکانو په ذريعه سرته رسولې شول ـ انګريزانو ته هم دا طريقه په ميراث کښې پاتې شوي وه ـ او ترڅو چه د قبائيلي علاقو د پاره ايجنسيانې نه وې قائمې شوې ـ تر هغه وخته پورې دوئ هم په دې طريقه روان وو ـ د هرې ضلع ډپټي کمشنر به د هغه ضلع سره د ملحقې سرحدي علاقې معاملات هم طې کول دا معاملات به د هغه ضلع د يو مشهور يا مشهورو خانانو په ذريعه اجراء کيدل چنانچه مثلًا د سوات ، بونير ، او دير باجوړ وغيره سرحدي علاقو معاملات به د سدوم او هوتي مردان د خانانو په ذريعه سرته رسولې شول ـ د خيبر د افريدو شينوارو معاملې به د پېښور د خليلو ، مهمندو ارباباٰنو په ذريعه طې کيدلې ـ د دغه شان د کوهاټ د اورکزو معاملې به د

هغوی د خانانو په ولقه کښې وه. او د وزیرو محسودو سره کشالے به د ټانک د نواب
په ذریعه فیصله کیدلے.

لکه چه مو وئیلی دی انګریزانو د پښتنو په مقبوضه علاقه کښې هم هغه قوانین جاری کړل کوم چه د دوئ د سلطنت په نورو حصو کښې جاری وو. دا قوانین په اکثرو صورتونو کښې د پښتنو د قامی خصوصیاتو او د دوئ د پښتون ولئ د ضابطے سره متصادم وو. او په دے وجه به په دے علاقه کښې د قانون شکنئ واقعات پیدا کیدل. دا قانون شکن به د سزا نه د بچ کیدلو په خاطر په قبائیلی علاقو کښې پناه ګزین شول. داسے خلقو کښے به اکثر هغه خلق وو چه هغوی به څه اخلاقی جرمونه کړی وو. لیکن کله کله به د هندوستان نه هم څنے داسے خلقو قبائیلی علاقو ته هجرت اوکړو. چه هغوی به د قانون په نظر کښے سیاسی مجرمان وو. داسے قانون شکن او د قانون په نظر کښے مجرمان که په یو لور به د حکومت په نظر کښے مفروران او د سزا قابل وو نو په بل لور به دوی په قبائیلی علاقه کښے پناه اخستی وه. او قبائیلی پښتانه به د پښتونولئ د ضابطے مطابق د دوی په مرسته او حمایت مجبور وو. حکومت به د داسے خلقو د واپس کولو مطالبه کوله لیکن قبائیلی پښتانه به دے مطالبے ته تیار نه وو. ځکه چه د پښتنو د ضابطے مطابق هر څوک چه د یو پښتون سره پناه واخلی نو هغه بیا د هغه په حفاظت مجبور وی. خواه که دا پناه اخستونکے د هغه د سر دښمن ولے نه وی. په دے ډول د حکومت او د قبائیلی پښتنو ترمینځه به د مخالفت او کشمکش یوه وجه پیدا شوه. د دے نه علاوه د حکومت هند دا منشا هم وه چه د هند د حفاظت په نوم په قبائیلی علاقو کښے سړکونه تعمیر کړی. او په اهمو ځایونو قبضه اوکړی. د دے ټولو نتیجه دا شوه چه د برطانوی حکومت او قبائیلو ترمینځ د خونړی جنګونو یو سلسله شروع شوه. د دے ټولو جنګونو حالات بیانول نه خو ضروری دی او نه ئے څه فائده شته. صرف دومره وینا بس ده چه د ۱۸۵۷ء او ۱۸۷۷ء ترمینځه د شلو کالو په عرصه کښے د انګریزی حکومت او قبائیلی پښتنو ترمینځه یوولس اهم جنګونه اوشول. په دے جنګونو کښے یو جنګ د امبیلے هم دے. چه په ۱۸۶۳ء کښے شوے وو. د دے جنګ مختصر حال بیانول په دے وجه مناسب دی چه د دے تعلق د هغه تحریک سره وو کوم چه د سید احمد شهید بریلوی په مشرئ کښې د دے جنګ نه څه کم وزیات دیرش کاله اګاهو د پښتنو په علاقه کښې تیر شوے وو.

لکه چه په تیرو پاڼو کښې وئیلی شوی دی په کال ۱۸۳۱ء کښې سید احمد بریلوی سره

د خپلو ملګرو او مرستیالو د سیکانو سره په یو جنګ کښې د بالاکوټ په مقام شهید شو۔ او د هغهٔ د شهادت نه پس د هغهٔ تحریک بے نظمه شو۔ کوم مجاهدین چه ژوندی پاتے شوی وو په هغو کښې داسے څوک د مرکزی شخصیت سړے نهٔ وو۔ چه دا تار په تار اجزاے یو مرکز ته راغونډ کړے وے۔ او دا تحریک ئے بیا په مضبوطو بنیادونو منظم کړے اوچلولے وے۔ نو په مجاهدینو کښې انتشار پیدا شو۔ او د پښتنو په قبائیلی علاقو کښې خوارهٔ شول۔ لیکن د دے نه پس مجاهدینو خپل اصلی اغراض و مقاصد شا ته کړل او په قبائیلی پرو جنبو او سیاسیاتو کښې داخل شول۔ دغه وخت د پښتنو او مجاهدینو ترمینځه د عقیدے په باب کښې هم ډیر اختلافات پیدا شول۔ د سید احمد شهید نه پس په مجاهدینو کښې د سید احمد د دوباره ژوندی کیدلو عقیده په ډیر شدت سره خوره شوی وه۔ د دے لغو عقیدے نه علاوه د مجاهدینو څنے نور عقائد هم د عامو مسلمو عقائدو نه مخالف وو۔ او د دے نتیجه دا شوه چه د پښتنو او مجاهدینو تعلقات به خوشګوار نهٔ وو۔

په صوبه سرحد باندے د انګریزانو د قبضے نه یو کال پس د سوات یوسفزو د خپل اندرونی تنظیم او مرکزیت په خاطر د ستهانه سید اکبر شاه خپل بادشاه مقرر کړے وو۔ او په سوات کښې یو قسم شرعی حکومت قائم شوے وو۔ دا سید اکبر شاه هغه سړے وو چه د دهٔ د مرستے او حمایت په وجه د سید احمد شهید تحریک په پښتنو کښې خور شوے وو۔ په دے ورځو کښې د سوات په علاقه کښې د سوات اخوند صاحب عبدالغفور رح هم د روحانی اقتدار خاوند وو۔ او په پښتنو کښې ئے د خپلو مرستیالو یوه ډله لرله۔ لیکن سید اکبر شاه چونکه سید او د پیر بابا نمسے وو نو په دے وجه خلقو د بادشاه په ډول منلے وو۔ سید اکبر شاه چونکه د سید احمد شهید د تحریک یو سرګرم پیروکار پاتے شوے وو۔ نو په سوات کښې د دهٔ د حکومت په وخت کښې اکثر اهلکار او د حکومت کارداران مجاهدین وو۔ په دے وجه په خلقو کښې د سید اکبر شاه د حکومت برخلاف جذبات او پاریدل۔ او ورو ورو په دوئ کښې اختلافات پیدا شول۔ د بده مرغه په کومه ورځ (۱۱ مئ ۱۸۵۷ء) چه د هندوستان د جنګ آزادئ خبر پیښور ته رااورسیدو۔ هم په دغه ورځ سید اکبر شاه په سوات کښې وفات شو۔ د دهٔ د جانشین په مسئله د سوات په یوسفزو کښې اختلاف پیدا شو۔ او هغوی د سید اکبر شاه ځوے سید مبارک شاه د خپل بادشاه په ډول قبول نهٔ کړو۔ په دے ورځو کښې د انګریزانو نه باغی شوی څنے سپاهیان هم سوات ته راغلی وو۔ چناچه سید مبارک شاه دغه سپاهیان او مجاهدین

دخان سره ملګری کړل ـ او د سوات نه پنجتار ته راغی ـ

پنجتار وړاندې هم د مجاهدینو یو مرکز پاتې شوے وو ـ لیکن داځل دمجاهدینو او پنجتار د خان تعلقات ډیر زر خراب شول ـ او دوئ د دې ځائ نه په تلو مجبور شول. بونیر ته لاړل ـ مګر په بونیر کښې هم د مجاهدینو پښې او نه ټکیدلے ـ نو د بونیر نه امب ته لاړل ـ په ابتدا کښې دامب نواب د خپلو اغراضو د پاره د مجاهدینو سره سلوک اوکړو ـ ولے وروستو دے هم ورنه مخالف شو ـ او د دے نتیجه دا شوه چه د مجاهدینو د پاره د امب استوګنه هم ګرانه شوه ـ او د دے ځائ نه دوئ ستهانې ته لاړل ـ ,, ستهانه ،، د سید اکبر شاه د استوګنې ځائ وو ـ په ستهانه کښې مجاهدینو ته آرام و اطمینان حاصل شو ـ او دوئ خپل طاقت بیا راغونډ کړو ـ

په ۱۸۵۸ء کښې مجاهدینو د څنې پښتنو قبائیلو په مرسته د تاریخي (ضلع مردان) په مقام د انګریزانو برخلاف یو مضبوطه مورچه قائمه کړه ـ او د دوئ ترمینځه یو سخت جنګ اوشو ـ چه د هغې په نتیجه کښې مجاهدینو ته دګماټټو پلټنې دلاسه ډیر زیان اورسید ـ د دے نه پس انګریزی فوځونو د مجاهدینو په اصلی مرکز ستهانه هم حمله اوکړه ـ او د دے نتیجه دا شوه چه مجاهدین د ستهانې نه هم په وتلو مجبور شول ـ او د دے ځائ نه ,, ملکا ،، ته لاړل ـ د ستهانې په جنګ کښې د سید اکبر شاه ورور سید عمر شاه اووژلے شو ـ او سید مبارک شاه چه د سید اکبر شاه ځوئ وو سخت ژوبل شو ـ انګریزانو د علاقې خلق هم په دے خبره مجبور کړل چه دوئ به د آئنده د پاره مجاهدین په خپله علاقه کښې نه پریږدی ـ په دے ډول د مجاهدینو د سرګرمئیو مرکز د ستهانې نه ,, ملکا ،، ته منتقل شو ـ

د دے مرکز نه به مجاهدینو د مردان او صوابئ په علاقه کښې د سید مبارک شاه په سرکردګئ کښې حملے کولے ـ او انګریزانو ته به ئې تکلیف پیدا کولو ـ د سکانو په نسبت د انګریزانو په وخت کښې اګرچه خلقو ته مذهبي آزادي حاصله وه ـ لیکن چونکه سیکان او انګریزان دواړه فرقې بے دینه وے ـ نو د مجاهدینو په خیال کښې د دوئ تباهي جائزه او ضروري وه ـ چه د مجاهدینو سرګرمئ زیاتې شوے نو انګریزی حکومت د دوی د مکمل بیخ کنئ اراده اوکړه ـ او د مجاهدینو د مرکز ,, ملکا ،، د بربادولو د پاره په کال ۱۸۶۳ء کښې د فوځ مهم آغاز اوشو ـ دا مهم دامبیلے په مهم یادیږی ـ

د دے مهم په آغاز کښې انګریزی حکومت د دے خبرے اعلان اوکړو چه حکومت انګریزی د پښتنو په علاقه د قبضې څه اراده نه لری ـ او نه به د دوئ په اندرونی انتظام کښې څه

مداخلت کوی۔ بلکه ددے حیلے غرض ددے علاقے نه د مجاهدینو لرکول دی۔ څکه قبائیلو ته یکار دی چه دوئ ددے فوځ مهم په وجه په زړونو کښے شکونه شبهات نۀ پیدا کوی۔ او د مجاهدینو ملګرتیا ډ نۀ کوی۔ په دے وخت کښے د انګریزی حکومت دا خیال هم وو چه د سوات اخوند صاحب به هم د مجاهدینو مرسته او نۀ کړی۔ څکه چه د دوئ په خیال کښے د مجاهدینو واکے د سید مبارک شاه په لاس کښے وے۔ او هغه د سوات پښتنو د بادشاه په ډول نۀ وو قبول کړے۔ لیکن د انګریزی حکومت دا خیال غلط ثابت شو۔ د سوات اخوند صاحب په دے غزا کښے شامل شو۔ او د دیر او باجوړ پښتانۀ هم د مجاهدینو په مرسته کښے اوجنګیدل۔ دا مبیلے دا مهم د پښتنو په تاریخ کښے ډیر شهرت لری۔ ددے په باب کښے د پښتنو اولسی شاعرانو ډیرے چاربیتے وئیلی دی۔ چه څنے په کښے فرانسیسی مستشرق «جیمز دارمستیټر» په خپل کتاب "د پښتنو غنوا دشعر هارو بهار" کښے جمع کړی دی[لے]۔

انګریزانو چه د دے مهم د پاره خپلے تیاریانے مکملے کړے نو په ۱۳ر اکتوبر ۱۸۶۳ء کښے د جنرل چیمبرلین په کمان کښے انګریزی فوځونو د «شیر درے» په لار کوچ اوکړو۔ د حملے نه وړاندے انګریزی حکومت د بونیر قبائیل او د وادئ چملے اولس د دے مهم نه ناخبره ساتلی وو۔ اودا د دوئ غلطی وه۔ په دے وجه د قبائیلو په زړونو کښے شکونه او شبهات پیدا شول۔ اګر چه د حملے په وخت کښے دوئ د یو اعلان په ذریعه خپلے ارادے واضحه کړے وے۔ لیکن ددے نه څه فائده او نۀ شوه۔ قبائیل د زړګونو په شمیر کښے په ډیر جوش وخروش د انګریزانو مقابلے ته تیار شول۔ څکه چه د دوئ په خیال کښے انګریزی حکومت د دوئ په علاقه د مجاهدینو په بهانه قبضه کوله۔ د اکبر اعظم د زمانے نه پس دا وړومبئ موقع وه چه د یو حکومت د لوری نه په دومره لویه پیمانه په دے غرئیزه علاقه حمله اوشوه۔ څکه چه په درانیانو او سکانو کښے دومره جرأت او طاقت نۀ وو چه هغوی د پښتنو ددے دومره لرے او غرئیزے علاقے د پائمال کولو جرأت کړے وے۔ دے کښے شک نشته چه انګریزانو ددے علاقے د پائمال کولو جرأت څنو کړے وو۔ دا هم درسته ده چه د مغل اعظم فوځونه د ملندرئ په مقام ددے پښتنو د لاسه بیخی تباه شوی وو۔ او د انګریزی جرنیل حالت د مغل جرنیل بیربل او زین خان په مقابله کښے نسبتاً ډیر غوره وو۔ ولے دا یو حقیقت دے چه انګریزان هم په دے خپل جرأت ډیر ستومانه شوی وو۔ او په کومه طریقه چه دوئ دا مهم ختم کړو هغه د انګریزی فوځونو

---

لے دا کتاب د پښتو اکیډیمئ په کتب خانه کښے موجود دے

د جرأت برکت نه بلکه د انګریزي حاکمانو د سیاست کارنامه وه.

انګریزي فوځونه په ۲۰ اکتوبر د امبیلې په دره ورننوتل. دا دره نهه میله اوږده او تنګ په کښې ډیر ګران دے. د درے په اخر کښې بونیریانو د انګریزي فوځ مقابله اوکړه. ولے فوځ ئے ایسار نهٔ کړے شو. او انګریزي فوځ په یو محفوظ مقام کیمپ اولګولو. د توقع نه خلاف قبائیلي لښکر په انګریزي کیمپ شبخون اووهلو. په ډیر شوامونو د پښتنو دا حمله او تمبولے شوه. په دغه ورځو کښې د سوات اخون صاحب د مجاهدینو مرستے ته رارسیدلے وو. د پښتنو او مجاهدینو ترمینځه ټول اختلافات لرے شوی وو. او دوئ ټول د خپلے آزادي دحفاظت په عرض د انګریزانو مقابلے ته متحد وو.

انګریزانو د خپل کیمپ د ښهٔ حفاظت نه پس په دوو ځایونو خپلے مورچے قائمے کړے. چه یو د "کریګ پکټ" په نامه او بله د "ایګل نسټ" په نامه مشهوره وه. په ۲۵ اکتوبر د انګریزي فوځونو او غازیانو ترمینځ شدید جنګ اوشو. ولے په دے جنګ څه فیصله اونهٔ شوه. څلور ورځے پس په ۲۹ اکتوبر بیا جنګ اوشو. چه انګریزانو ته په کښے شدید نقصان اورسید. دغه وخت انګریزانو ته دا معلومه شوه چه دا معامله چه څومره اسانه ګڼلے شوی وه هغومره اسانه نهٔ ده. د انګریزانو دا خیال وو چه د پښتنو دګوډی لښکر به په استقلال مقابلے ته او نهٔ دریږی. او زر به خورشی. ولے خلاف توقع دامهم ډیر اوږد شو. او انګریزان د جارحانه اقداماتو په ځائے په مدافعانه جنګ مجبور شول. مجاهدین او قبائیلي پښتانهٔ په ډیر شجاعت او استقامت مقابلے ته تیار وو. د دے جنګ په دوران کښے چه دوئ د شجاعت کوم مظاهرے کړے وے په هغ د انګریزي فوځ افسران هم قائل وو. او ټولوئے ستائینه کړی وه. د انګریزانو په دواړو مورچو "ایګل نسټ" او "کریګ پکټ" باندے به هندی مجاهدینو او پښتنو خوفناک حملے کولے. په دے حملو کښے دانګریزي فوځ نهه سوه سپاهیان اووژلے شول. په خپله انګریزي کمانډر جنرل نیول چیمبرلین هم په دے حملو کښے ژوبل شو. د "کریګ پکټ" په مورچه دومره تباهي اوشوه چه دا ځائے تراوسه پورے د "قتل ګړه" په نامه یادیږی. د دے جنګ په حقله ډیرو اولسي شاعرانو چاربیتے هم وئیلی دی. دنواب جان نوے یو اولسي شاعر دیوے چاربیتے یو دوه شعرونه دا سے دی.

په سر د قتل ګړه پیرنګی ډیر وکه ارمان — شوه پیښه د خطر پسے
په سترګو ئے تیارهٔ شوه چه لیدل به ئے غازیان — غم راغ سرا سر پسے[1]

---

[1] د پښتو نخوا شعر هار و بهار ص۳۰

سره د دے چه د قتل کړه په دے مورچه غازیانو ته هم لوئے نقصان رسیدلے وو. لیکن د هغوی په شجاعت او همت کښے څه فرق نۀ وو راغلے. په دے جنګونو کښے به عارضی صلح هم کیدله. او دغه شان به طرفینو ته د خپلو خپلو مړو وړلو موقع هم ورکیدلے شوه. او د دے نتیجه دا شوه چه د طرفینو په مینځ کښے د جنګ په میدان کښے هم دوستانه تعلقات پیدا شول. د دے نه انګریزانو فائده واخستله. او د خپل مطلب ښبرے ئے د پښتنو تر غوږونو او رسولے. ولے پښتنو په صفا لفظونو کښے د خپلے آزادئ د حفاظت عزم ښکاره کړو. او هر کله چه انګریزان د تورے په زور په دوئ کامیاب نۀ شول نو د سیاست نه ئے کار واخست. په دوئ کښے ئے خپل سړی خواره کړل. د مجاهدینو د عقائدو اختلاف او مختلف مفاد مینځ ته راوړوړلے شول. او د قبائیلو په مینځ کښے ئے اتفاقی پیدا کړه. او د شپږو هفتو د اوږد جنګ نه پس انګریزانو په مختلفو طریقو د بونیر د خانانو جرګه دے ښبرے ته اماده کړه چه د انګریزی فوځ د یوے دستے او څو افسرانو سره دا جرګه په خپله ملکا ته لاړه شی. او په خپل لاس د "ملکا" کلے او سوزوی. او په دے ډول د انګریزی اقتدار برم او ساتلے شی. د یو "ملکا" کلی په سوزولو د انګریزانو رضا کیدل د دے ښبرے څرګند ثبوت دے چه انګریزان په خپل مقصد کښے ناکامیاب شوی وو. او دا ښبره ئے صرف د خپلے ناکامئ پټولو په غرض منظوره کړی وه.

د بونیر د خانانو جرګه د ذکر د یو مشر خان زید الله خان په مشرئ کښے د انګریزانو د یوے فوځئ دستے او څو افسرانو سره د ملکا د سوزولو په غرض روانه شوه. لیکن دا معلومیږی چه عام اولس د خانانو په دے رویه ناراض وو. لیکن انګریزانو د بونیر خانان (بالخصوص زید الله خان) په خپل حبیب کښے اچولی وو. د زید الله خان د دے رویے په مقله څنے اولسی شاعرانو چاربیتے هم ویلی دی. په دے چاربیتو کښے د اولس د خفګان اظهار او د زید الله خان غندنه شوی ده. د یوے چاربیتے یو څو شعرونه دا دی. ؎

یادیږی په ذکر کښے زید الله نوے نهنګ — غازیانو جمع وکه په لالوئے وکه جنګ
ورغ په نیمه شپه ښبرے وکه په فیرنګ — جیس ته ئے وویل چه ان دیر د خان خطر کا
جیس ورله وویل زید الله دربه کړم انعام — دستانیځه آئے شولے په ما بانده مدام
وائ نورمشال زید الله غرق دِ کړو اسلام — دعادرته کوم رب دِ کړی وایه تیر که
له هنده دی راغلی په غزا ییے سفر که[۱]

---

[۱] د بونیر د جنګ چاربیته. د پښتنو غزا د شعر هار بهار د جیس دار ستیهتر

چه د انګريزانو فوځي دسته دملکا په لور روانه شوه ، واولس بيا اوپاريدلو . او دميلي اراده ئ اوکړه . ليکن په دے موقعه زيد الله خان چه يوه ستړکه او يو لاس ئ په جنګونوکښې بائللودے وو . پاريدلي اولس ته وروړاندے شو او په لويه چغه ئ اوويل ، د بونير جرګے دملکا د سوزولو او دانګريزي فوځي دستے او ددوئ دافسرانو د ژوند او سلامتيا وعده کړي ده . دا جرګه به خپله وعده ضرور پوره کوي . پس کوم خلق چه دے فوځيانو او افسرانو ته لاس واچوي . نو هغوي به د بونير دجرګے متفقه دشمنئ ته تيار يږي . د زيد الله خان دے تنبيه او دپکے خو عملاً خلق دميلي نه منع کړل . ولے دوئ په ټوله لار په دے فوځيانو پسے روان وو . او دموقع په تالاش کښې وو . دا فوځي دسته ، افسران او د بونير جرګه چه ملکا ته اورسيدله . نو دکلي نه بهر يو څوکوټو ته ئ اور واچولو . او د هغ لوخړے آسمان ته اوختلے . په دے موقع اولس بيا دخود نه اووتلو . ولے څه ماته کډه پيښه نۀ شوه . او دا فوځيان ، افسران د بونير د خانانو او ملکانو په ملګرتيا کښې بيرته راغلل . او دغه شان دامبيلے دا مهم ختم شو .

دامبيلے دے مهم که يو طرف ته انګريزانو ته دا خبره ثابته کړه چه په سرحدي قبائيلو کښې سياسي سکون و اطمينان د ټول برصغير د سکون و اطمينان دپاره ضروري دے نو په بل لور په دے جنګ کښې انګريزانو ته د پښتنو د قامي خصوصياتو مختلف اړخونه هم څرګند شول . پښتنو په جنګ کښې دانګريزانو د بهترين سازو سامان نه اراسته فوځونو سره مقابله هم اوکړه . ولے د متارکے نه پس چه دوئ کوم وعدے او لوظونه د انګريزي افسرانو سره کړي وو . د خپلو پرجوش خلمو د مخالفت باوجود په ډيرے ديانتدارئ هغه پوره هم کړل . او دا ئ ثابته کړه چه پښتانۀ خپل لوظ او وعده په هر دستور پوره کوي .

**د ايجنسيانو قيام :-** د افغانستان داول جنګ نه پس چه انګريزانو په سنده قبضه اوکړه (۱۸۴۳ء) نو په قادره قلاره د ، جان جيکب ، په کوششونو د برطانوي حکومت اثر ونفوذ د بلوچستان تر پولو اورسيدۀ . د بلوچستان بروهي او بلوچي قبائيل دخپلو مشرانو د رائ په مقابله کښې داولس انفرادي رائ ته څه اهميت نۀ ورکوي . او دا مشران چه خپل اولس په کومه لار بيائ دوئ په پټو سترګو په هغوي پسے روان دي . ولے د پښتنو قبائيلو حال د دوئ نه بيخي جدا دے . د پښتنو قبائيلو هر فرد په خپله رائ کښې آزاد وي . او په آفريدو او وزيرو محسودو کښې خو د هرے انفرادي رائ هم ډير اهميت وي . دغه وجه ده چه د دے قبائيلو مشران تر هغه وخته يوے فيصلے ته غاړه نۀ ږدي . تر څو چه د قبيلے

ټول افراد دهغې فيصلې مرستې او حمايت ته تيار نهٔ وی. برطانوی حکومت په قلاره بلوڅي او بروهي قبائيل په خپل لاس کښې اخستي وو. د قلات خان چه ددے قبائيلولوئے سربراه وو. د انګريزانو مرسته قبوله کړی وه. او په دے وجه د بلوچستان سرحد په عملی شکل کښې د هند په رقبه کښې شامل شوے وو. ولے ددے نه علاوه د هند د حفاظت نورے لارے او درے د هند د شمال مغربي سرحد په پوله باندے د آباد و پښتنو قبائيلو په قبضه کښې وے.

ترڅو چه د انګريزانو د ملک ګيرئ جذبه نهٔ وه تيزه شوی تر هغې پورے دوئ ددے قبائيلي پښتنو په معاملاتو کښې زياتے ګوتے نهٔ وهلے. ولے هرکله چه د دوئ د ملک ګيرئ جذبه تيزه شوه نو دوئ ته په هند باندے د روس د حملے خطره بيا څرګنده شوه. او د دے خطرے په لړکښې د افغانستان سره بيا لاس واچولو. او د افغانستان دويم جنګ ئے شروع کړو. او د دے په نتيجه کښې د ګندمک معاهده اوشوه. (سنه ۱۸۷۹ ء)

د معاهده ګندمک په رڼا کښې د خيبر او کرم درے د انګريزانو په قبضه کښې راغلے. چنانچه په سنه ۱۸۷۹ ء کښې سمدستي انګريزانو د خيبر ايجنسي قائمه کړه. او په سنه ۱۸۸۰ ء کښې د انګريزي حکومت او د خيبر د قبائيلو ترمينځ يو معاهده اوشوه. ددے معاهدے له مخه انګريزي حکومت ددے قبائيلو د آزادئ اقرار اوکړو. او قبائيلو دا منبره اومنله چه دوئ به صرف د انګريزي حکومت سره خپل سياسي تعلقات ساتي. او د خيبر د لارے حفاظت به هم د دوئ په ذمه وی. د دے په بدل کښې انګريزي حکومت دے قبائيلو ته د واجب ورکولو اقرار او کړو. په دے معاهده دا فريدو د قبيلے (قمری، زخه خيل، کوکي خيل، ملک دين خيل، قنبر خيل او سپا) ځانګو او د شينوارو د قبيلے ملکانو او مشرانو دستخطونه اوکړل. د معاهدے نه پس د خيبر د لارے د حفاظت په غرض ددے قبائيلو نه د "خيبر رائفلز" په نوم يو بے قاعده فوځ هم مرتب شو.

د معاهده ګندمک په نتيجه کښې د کرے دره هم د انګريزانو په ولقه کښې راغلی وه. ولے دلته لا ايجنسي نهٔ وه قائمه شوی. چنانچه توری قبائيلو په خپله د انګريزی حکومت نه د ايجنسي قائمولو خواست اوکړو. او په سنه ۱۸۹۲ ء کښې د کرے ايجنسي هم قائمه شوه. او په دے پسے سمدستي د برطانوی حکومت او امير عبدالرحمان ترمينځه د ډيورنډ لائن معاهده اوشوه.

د مقبوضه علاقے او د سرحد د ازاد علاقو د تعلقاتو د منظم کولو ضرورت برطانوی حکومت د ډيرے مودے نه محسوس کولو. په دے غرض د خيبر ايجنسي قائمه شوی ده. او

د معاهده خیبر په تکمیل او د امیر عبدالرحمان له خوا د معاهده گندمک د تصدیق وتوثیق نه پس برطانوی حکومت ته ډیر اطمینان حاصل شو. او دوئ دا او وئیل چه دکوم مقصد د پاره دافغانستان معاملاتو ته لاس اچولے شوے وو. هغه مقصد په کامل طور پوره شو. یعنی دهند د حفاظت ټولے درے (بولان، خیبر او کرمه) اوس زموږ په قبضه کښے دی. او د جنګ مقصد هم دده درو په قبضه پوره او د هندوستان د حفاظت یقین حاصل شو. په دے لړکښے سپاغلے سرهنری لمسډن په خپل رپورټ کښے دا سے وائی:-

«خدائے پاک موږ د بنجرو او سوړاړا غرونو په یو داسے مضبوط سرحدی لائن بهره مند کړی یو. چه په هغ کښے په شمیر یو څو درے دی او صرف د هغو په ذریعه په هندوستان کښے یو فوځ داخلیدے شی - ولے د فن حرب اصول موږ ته دا وائی چه ددے درو د حفاظت بهترین ځائونه زموږ په قبضه کښے دی. یعنی د فوځ د راتلو د لارو سره متصل د پیښور، کوهاټ او سیند میدانونه دی - چه هغه زموږ په تصرف کښے دی. او دا علاق د دیل او په اباسیند کښے د سټیمرونو په ذریعه دهندوستان د نورو صوبو سره ملحق دی. او ددے د حفاظت په غرض مضبوط یورپی فوځونه په ټول ملک کښے په صحت افزا مقاماتو کښے دیره وی - چه دهغوی دکومک او مرستے د پاره منظم او مضبوط هندوستانی فوځونه موجود دی. (په دے صورت کښے) زما خیال دے چه د هندوستان د حفاظت کنجیانے زموږ په جیبونو کښے دی. او موږ په دے حیثیت کښے یو چه موږ د هندوستان دروازے د ټولو دشمنانو د پاره بندولے شو. خواه که دا دشمنان سپین وی او که تور.»

د ډیورنډ لائن د معاهدے نه پس انګریزی حکومت ته د سرحد په ازادو قبائیلو باندے پوره اثر او اقتدار حاصل شو. ددے نه پس د سوات دیر، باجوړ او وزیرستان علاقے هم دانګریزی حکومت زیر اثر شوے او ددے علاقو د پاره هم دوئ ایجنسیانے قائمے کړے - چنانچه په ۱۸۹۵ء کښے د ملاکنډ ایجنسی قائمه شوه. دا ایجنسی د خپل اهمیت له کبله براه راست د مرکزی حکومت په نګرانئ کښے ورکړے شوه - په ۱۸۹۶ء کښے د وانا او ټوچي ایجنسیانے قائمے شوے او د دوئ انتظام حکومت پنجاب ته حواله کړے شو. لیکن دا ټولے سرحدی علاقے په خپل اندرونی انتظام کښے ازادے وے - د برطانوی حکومت تعلق صرف د هغه لارو او سړکونو پورے محدود وو کوم چه د خیبر، ټوچي، ګومل، کرمے او ملاکنډ په درو کښے د حفاظت او ټک راټک په غرض تعمیر شوے وو.

لیکن د ایجنسیانو په قیام په قبائلی علاقو کښے د سړکونو تعمیر، په اهمو مقاماتو د

فوځئ دستو قیام او د ډیورنډ د پولې د نښانانو قائمولو په غرض په قبائیلی علاقو کښې د انګریزی افسرانو او فوځونو نقل و حرکت داسې خبرې وې چه دې آزادو قبائیلو د خپلې آزادئ د ختمیدلو علامې اوګڼلې - او چونکه دا خلق د بابا آدم نه تر دې دمه پورې د خپلو غرئیزو علاقو کښې آزاد راغلی وو - او په دې علاقو کښې د چا مداخلت نۀ وو برداشت کړے نو په کال ۱۸۹۷ء کښې تقریبًا ټول قبائیلی پښتانۀ د برطانوی حکومت برخلاف اوپاریدل - او د خپلې ازادئ د حفاظت په غرض ئې د جنګ میدان ته اودانګل - د دې نه وړاندې او بیا وروستو هم چرې داسې او نۀ شول - چه ټول قبائیلی پښتانۀ په یو اتفاق د انګریزی حکومت برخلاف جنګیدلی وی - د غه وجه ده چه د دې کال دې قبائیلی جنګونو ته به د پښتنو قبائیلو له خوا د برطانوی استبداد او استعمار په مقابله کښې یو متفقه کوشش وئیل بې ځایه نۀ وی

د دې جنګ اور په جون ۱۸۹۷ء کښې د مداه خیلو وزیرو په علاقه کښې په "میزار" نومې کلی کښې اولګید - د غه اور څو ورځې پس ملاکنډ ایجنسئ ته هم اورسید - د اګست په میاشت کښې د جنګ شغلې د مهمندو علاقې ته هم اورسیدلې - او قبائیلی مهمندو په شبقدر حمله اوکړه - په دې پسې لږې ورځې پس د تیراه اورکزی او افریدی هم اوپاریدل - د خیبر فوځی استحکامات ئې تباه کړل - او د "سمانا" په قلا ئې حمله اوکړه - او په دې قلا کښې چه کوم فوځ موجود وو هغه ئې ټول اووژلو - غرض د پښتنو ټول ازاد قبائیل د خپلې ازادئ په حفاظت کښې د انګریزی حکومت سره په خونړی جنګونو کښې لګیا شول - انګریزی حکومت د دې قبائیلو د مسخر کولو په لړ کښې شدید فوځی اقدامات اوکړل - د انګریزی حکومت او قبائیلو دا مقابله په یو لحاظ هم د برابر او مساویانه طاقتونو مقابله نۀ وه - د قبائیلو سره نۀ خو توپې وې - او نۀ ورسره د اعلی درجې ټوپکې نه او کارتوسونه وو - نۀ ورسره پریوانه راشن وو - صرف د خپلې ازادئ یوه جذبه وه چه د هغې د حفاظت په لړ کښې د خپل سرومال نه تیر وو - اخر ډیرې خرابئ او نقصانونو نه پس انګریزی حکومت دومره اوکړل چه قبائیل ئې د جنګ نه منع کړل - سره د دې چه د پښتنو ټولې علاقې (مثلاً کوز او برسوات، بونیر، باجوړ، د مهمندو علاقه او تیراه وغیره) د انګریزی فوځونو د لاسه لتاړې شوې او پائمال شوی وې - بیا هم انګریزی حکومت دا جرأت او نۀ کړے شو چه په دې قبائیلی علاقو ئې مستقله قبضه کړی وې - صرف د قبائیلو سره ئې په معاهده اکتفا اوکړه - دا جنګونه د ۱۸۹۸ء په پسرلی کښې ختم شول - په خیبر ایجنسئ کښې د "خیبر رائفلز" په نامه فوځ دوباره قائم شو - په قبائیلی علاقو کښې نوی نوی سړکونه او په اهمو مقاماتو فوځی څوکئ او قلاګانې بیا تعمیر شوې - او سرحداتو دا موجوده شکل اختیار

کړو. د سنه ۹۸-۱۸۹۷ء واقعاتو برطانوي حکومت دې خبرې ته مجبور کړو چه د پښتنو د علاقې د انتظام د پاره یوه نوې پالیسي وضع کړي. د دغه وخت (سنه ۱۸۹۹ء) کښې د برطانوي هندوایسرائے لارډ کرزن مقرر شوے وو. دے بناغلي خپل ځان د وسط ایشیا د معاملاتو ماهر ګڼلو. او د خپلو راتلو سره سم د هندوستان د حفاظت حاج ځ د وسط ایشیا او افغانستان د معاملاتو په رڼا کښې واخست.

لکه چه وړاندې وئیلي شوي دي په برطانوي هند کښې د پنجاب د الحاق (سنه ۱۸۴۹ء) نه را په دې خوا د صوبه سرحد دا پنځه ضلع هم په پنجاب کښې شامل وې. وروستو چه د ازادو قبائیلو د پاره پنځه ایجنسیانې قائمې شوې

نوې د مالاکنډ ایجنسۍ نه نورې ایجنسیانې هم د حکومت پنجاب دانتظام لاندې چلیدلې. یو طرف ته دا علاقې په انتظامي لحاظ سره د پنجاب حکومت ماتحت وې. او په بل لور به حکومت هند د کل هند د حفاظت په رڼا کښې د دې علاقو انتظام ته کتل. د ډیرې مودې نه د مرکزي حکومت په نظر کښې د دې انتظام نقائص څرګند شوي وو. ولې د دې په مقله څه موثر قدم نه وو اوچت شوے. آخر لارډ کرزن په خپل عهد حکومت کښې دې لور ته توجه اوکړه. او په کال سنه ۱۹۰۱ء کښې ځ د هزارې ضلع او د اباسیند نه په قبله د پېښور، کوهاټ، بنوں او ډیره اسماعیل خان څلور ضلع د پنجاب نه بیلې کړې او د قبائیلي علاقو پنځه ایجنسیانې ئې هم د دې ضلعو سره تړل کړې. او د دې نه د شمال مغربي سرحدي صوبې په نوم یوه نوې صوبه تشکیل کړه. او چیف کمشنر ئې د دې صوبې حاکم اعلیٰ مقرر کړو. دا چیف کمشنر به په انتظامي حیثیت کښې د دې مقبوضه ضلعو حاکم اعلیٰ وو. او د قبائیلي علاقو د تعلقاتو او ایجنسیانو د ضبط و نظم به هم ذمه وار وو. او د دې ذمه وارئ په باب کښې به د مرکزي حکومت په وړاندې جواب ده وو. د شمال مغربي سرحدي صوبې اولنے چیف کمشنر سر هیرلډ ډین مقرر شو. چه د صوبې د تشکیل په وخت کښې د ملاکنډ ایجنسۍ پولټیکل ایجنټ وو. دا صوبه په سنه ۱۹۰۱ء کښې قائمه شوې وه. او د پاکستان د جوړیدو نه پس تر سنه ۱۹۵۵ء پورې ځان له صوبه وه. ولې په دغه کال په ۱۴ اکتوبر د مغربي پاکستان څلور واړه صوبې (شمال مغربي سرحدي صوبه، مغربي پنجاب، سنده او بلوچستان) په یو لوئ وحدت کښې مدغمې کړې شوې. او د مغربي پاکستان په نوم ترینه یو لویه صوبه سازه کړې شوه.

د شمال مغربي صوبې د تشکیل په وخت کښې د پنجاب صوبه د لیفټیننټ ګورنر ماتحت

صوبه وه. تر دغه وخته (سنه ۱۹۰۱ ء) پورے چه د برطانوی هند نورو صوبو ته کوم اصلاحات ورکړے شوی وُو. هغه د پنجاب صوبے ته هم ورکړے شوی وو. او د یو آئینی حکومت دلاندے چه کوم مراعات او فائدے اولس ته حاصلے وے هغه د پنجاب د شمولیت په وجه د نوی صوبے (سرحد) دے پنځو ضلعو ته هم حاصلے وے. دغه وجه وه چه کوم وخت وزیر هند د لارډ کرزن د دے نوی صوبے د تشکیل منظوری ورکوله. نو هغهٔ هم دا سوال پورته کړے وو چه د دے نوی صوبے د تشکیل په وجه به د دے پنځو ضلعو خلق د آئینی حکومت د مراعاتو نه محرومه شی. او دا به د دے خلقو په حقله بے انصافی وی. په بل لور د پنجاب حکومت هم د دے صوبے په تشکیل اعتراضونه شروع کړل. او دا ئے خپله حق تلفی اوګڼله او د حکومت هند دا اقدام ئے په خپلے انتظامی کمزورئ محمول کړو.

ولے د دے اعتراضونو باوجود دا نوی صوبه تشکیل شوه. ترڅو مره چه د دے اعتراضونو تعلق دے که چرے حقیقت ته اوکتلے شی نو دا دومره اهمیت نهٔ لری. د حکومت پنجاب له خوا د دے ضلعو او قبائیلی علاقو د انتظام په لړکښے څه داسے خاصه کارنامه نشته چه د هغې ستائینه اوشی. د حکومت پنجاب د پاره د دے ضلعو څه خاص اهمیت نهٔ وو. او نهٔ ئے د قبائیلی علاقو د انتظام سره څه خاصه مینه وه. او نهٔ د قبائیلی علاقو د معاملاتو د پنجاب سره څه تعلق وو. د دے علاقے معاملات به هم د حکومت پنجاب په ذریعه د حکومت هند سره د هغه دفتری سرے فیتے په طریقے طے کیدل کومه چه د برطانوی حکومت هند د دفترونو یو امتیازی طریقه وه. او د دفتر سرے فیتے معاملات دے حد ته رسولی وو چه په خپله لارډ کرزن دے وینا ته مجبور شو. "د کار نظام دومره خراب دے چه یوه مرحله داسے هم راشی چه اصل مسئله د لاس لیکلی شوی او ټائپ شوی لیکنو په ګرداب کښے ګیره شی. او بیا دغه ځائے تولے ضروری خبرے بالکل غیبے شی. او د دے ګرداب نه د اصل مسئلے را ویستل ناممکن شی."

دا ظاهره ده چه د دے علاقو د خاصو حالاتو دا تقاضا وه چه د دے انتظامی معاملاتو ته دِ دَ سرے فیتے د روایتی چکر نه بالا بالا په حقیقت پسندانه نظر اوکتلے شی. د دے نه علاوه د پنجاب نه د دے پنځو ضلعو د جدا کولو او د دے سره د قبائیلی علاقو د یو ځائے کولو بنیاد په دے نظریه قائم وو چه دا ټول یو اولس دے. دا خبره هم د فکر وړ ده. چه ترکومه حده د پنجاب د شمولیت په وجه د دے پنځو ضلعو د خلقو د آئینی مراعاتو نه د استفادے سوال دے نو حقیقت دا دے چه ترڅومره پورے د دے ضلعو د مسلمان اباد ئ تعلق وو هغوی

د تعلیمي پسماندګۍ، عزبت او خپلو مخصوصو روایاتو په وجه د دې آئيني مراعاتو نه څه فائده نه شوه حاصلولې. د دغه وجه وه چه د پنجاب نه د جدا کیدو په موقعه د خلقو هیڅ قسم د څه خفګان او احتجاج مظاهره او نه کړه. البته دا درست ده چه په دې پښتو صلعو کښې چه په ډیر لږ شمیر کښې کوم هندوان او سیکان میشته وو هغوی د دې جدائي او د دې نوي صوبې د تشکیل پرزور مخالفت اوکړو. او د دوی مخالفت تر اخره وخته پورې جاري وو. بلکه د دې نه یو فرقه وارانه سوال جوړ کړې شو. چنانچه وروستو به د پنجاب مسلم ممبرانو د صوبه سرحد د قیام حمایت کولو. او د پنجاب غیر مسلم ممبرانو به د پنجاب سره د دې د الحاق کوشش کولو. د صوبه سرحد د هندوانو، سیکانو له خوا د دې نوي صوبې د مخالفت غټه وجه هم دا وه چه د پنجاب سره د شمولیت په وجه په پنجاب کښې د مسلمانانو اکثریت هم په دې خبره ډیر متاثر کیدلو. او په بل لور په نوي صوبه کښې دا خلق په ډیر معمولي اقلیت کښې پاتې کیدل. او اګرچه د دې صوبې د تشکیل په وخت کښې خو دا صوبه د آئيني اصلاحاتو نه محرومه وه. ولې په مستقبل کښې خو دا امید کیدې شو. چه د دې صوبې ته به هم هغه آئيني مراعات حاصل شي کوم چه به د هند نورو صوبو ته حاصل وو. او په دې صورت کښې به دا هندوان سیکان په ډیر معمولي اقلیت کښې وو. د غه وجه وه چه د پنجاب او سرحد هندوانو سیکانو دا خبره نه شوه برداشت کولې چه د هندوستان په شمال مغربي سرحد باندې د یو داسې صوبه تشکیل شي. چه په هغ کښې د د مسلمانانو غالب اکثریت وي.

اګر چه د لارډ کرزن په ذهن کښې د دې صوبې د تشکیل په وخت کښې صرف د حکومت هند د خارجي پالیسۍ په رڼا کښې د هند د حفاظت مسئله وه. او دغه د دې صوبې د تشکیل یو لوئ باعث وو. ولې په غیر ارادي طور د دې نوي صوبې د تشکیل په وجه د پښتنو د قامي انفرادیت او عصبیت جذبې هم تسکین اوموندلو. او کوم اهمیت چه دوی د مغلو د زمانې نه د سیکانو تر زمانې پورې حاصل کړې وو. د هغ احساس بیا تازه شو. د مغلو په زمانه کښې اګر چه د پښتنو دا علاقه چه د انګریزانو په زمانه کښې به د شمال مغربي سرحد صوبې په نامه یادیدله. د کابل د صوبې ماتحت وه. ولې د دې علاقې اهمیت قائم وو. پېښور به د صوبې سرماني صدر مقام وو. او نائب ګورنر به ټول کال په پېښور کښې اوسیدلو. د سدو زو د تیمورشاه او شاه شجاع په وخت کښې هم دغه دستور قائم وو. او په دوی پسې د پېښور د بارکزو سردارانو د ګدۍ ځائې هم پېښور وو. د درانیانو او سیکانو په زمانه

کښې د پښتنو دے علاقے د یو میدان جنګ شکل اختیار کړے وو - ولے د انګریزانو په زمانه کښې دا غیر یقینی او غیر مستقل حالات بدل شول - او یو مقتدر او منضبط حکومت قائم شو - نو د نوی صوبې په تشکیل سره د پښتنو د قامی افتخار جذبې هم بیا وده شروع کړه - او دغه شان د پښتون قام د نوی ژوند د پاره یو بنیاد قائم شو - چه وروستو د پاکستان په جوړیدو په یو ځانګړ دور کښې داخل شو -

شمال مغربی سرحدی صوبه د چیف کمشنر ماتحت وه - او د یو نمائنده حکومت د هر قسم ارادو نه محرومه وه - د هند د حفاظت او په ازادو قبائیلو د خپل اقتدار قائم ساتلو په غرض به برطانوی حکومت د قبائیلو په معاملاتو کښې د مداخلت د پاره اغ بهانے لټولے - په مختلفو طریقو به قبائیلی علاقو کښې د فوځی څوکیانو او قلاګانو تعمیر او د فوځی اهمیت په مقاماتو د قبضے کولو د مهماتو په اغاز د قبائیلو او حکومت ترمینځه جنګونه جاری وو - د برطانوی حکومت دا پالیسی وه چه ازاد قبائیل په دے خپله غریبۍ او بے آب وګیا علاقه کښې محصور اوساتی او دا مقصد دوئ په فوځی مهماتو حاصلولو - دغه وجه وه چه برطانوی حکومت به د دوئ د پائیدارے او بنیادی سنبګړو په ځائے دا خلق په عارضی ماجبو نو غلول - او د سړکونو د تعمیر په عارضی فائدو به ئے مشغول ساتل - ولے د دوئ د تعلیم، صحت او اقتصادی ژوند د بهترۍ په لړ کښې به ئے ارادتاً د غیر معمولی غفلت او بے پرواۍ نه کار اخستلو - دغه وجه وه چه د انګریزانو او قبائیلو د سل کلیز سیاسی تعلق باوجود هم د قبائیلو په علاقه کښې د سړکونو د تعمیر نه نور څه د ښیګړے داسے کارونه اونه شول چه د قبائیلو په ژوند کښې ئے بنیادی او دور رسے تبدیلۍ پیدا کړے وے -

لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی د صوبه سرحد اولنے چیف کمشنر سر هیرلډ ډین مقرر شوے وو - نو مونږ د کال ۱۹۰۸ء پورے په دے عهده پاتے وو - هم په دے کال د ده په ځائے سر جارج روس کیپل " چیف کمشنر شو - دا ښاغلے د دے نه وړاندے ډیره موده د کرے او خیبر په ایجنسیانو کښې د پولټیکل ایجنټ په حیثیت پاتے شوے وو - او د پښتنو د خوئ، بوئ، دودونو د ستورونو او قامی کمزوریانو او خوبیانو نه په ښه شان خبردار وو - په پښتو ژبه ئے ډیر زیات عبور لرلو - په سوونو شعرونه او متلونه ورله په یاد وو - او په مناسبو موقعو ئے په استعمال قادر وو -

سر جارج روس کیپل یو ښه دوست مګر کینه ور دشمن او جابر حاکم وو - او د پښتنو په تاریخ کښې ډیر شهرت لری - د ده غټه کمزوری دا وه چه ده به خپل ځان د پښتنو معاملاتو

ماهر گڼلو۔ او دچلې راتلو په مقابله کښې به د بل چا راتګ ته دقحت ورکولو ته تیار نۀ وو۔ دغه وجه وه چه دۀ د پښتنو د سیاسي ترقۍ په لار کښې لوئے بندیز اچولے وو۔ د دۀ په خیال کښې د پښتنو علاقه یو بارود خانه وه۔ او سیاسي اصلاحات داور تیلے۔ او کوم خطرات چه په بارود خانه کښې د اور تیلي د لګولو د متصورکیدے شي دغه خطرات به دے سباغلي پښتنو ته د اصلاحاتو په ورکولو کښې هم محسوس کول۔

په سنه ۱۹۰۹ء کښې چه برطانوي هند کښې د منټو مارلے اصلاحاتو په نوم دیو نامنهاده او جمهوري طرز حکومت په لور کوم اقدامات شوي وو او د دے اصلاحاتو په وجه چه اولس ته څه لږ شان حقوق ورکړے شوي وو۔ دا اصلاحات په پنجاب کښې هم جاري شوي وو۔ ولے سرجارج روس کیپل د صوبه سرحد پښتانۀ د هر قسم اصلاحاتو نه محرومه ساتل۔ هغه به د برطانوي حکومت د اصلاحاتو په مقابله کښې د پښتنو دخپلے پښتنولۍ ضابطه او قوانین د دے خلقو د مزاج موافق او د دوئ دپاره موزون ګڼل۔ ولے دا د دے سباغلي حاکم لوئے زیاتے وو۔ یو طرف ته پښتانۀ د جابرانه او استبدادي قوانینو په اطاعت مجبور ساتل او په بل لور د دوئ د سیاسي ترقۍ نه د پښتونولۍ د ضابطے په نوم انکار کول په هیڅ لحاظ مناسب نۀ وو۔ دغه وجه وه چه د پنجاب د قربت په وجه د دے صوبے په خلقو کښې د سیاسي اصلاحاتو نه د خپلے محرومۍ په وجه مایوسي او بے اطمینانی پیدا شوه۔ ولے په دغه زمانه کښې د دے صوبے په خلقو کښې د سیاسي اصلاحاتو د حصول په غرض په اجتماعي ډول د څه کوشش کولو جذبه او تحریک لا نۀ وو پیدا شوے۔ او نۀ په دے زمانه کښې د پښتنو په علاقه کښې د سیاسي تحریکونو د جاري کولو څه امکان وو۔ او نه د دے تصورکیدے شو۔ دا صوبه په اصلي معنو کښې سرزمین بے آئین وه۔ او د چیف کمشنر مرضۍ او هرے خبرے به د قانون درجه لرله۔

اګر چه سرجارج روس کیپل د پښتنو د سیاسي ترقۍ لوئے مخالف وو۔ بیا هم د هغه د لوري نه د پیښور د اسلامیه کالج تعمیر یو داسے کارنامه ده چه د پښتنو د پائیدارے او بنیادي سنګرے په لړکښې پرے هغه د ډیرے ستائینے ور دے۔ د دے کالج په قیام کښې د سرجارج روس کیپل سره د سر صاحبزاده عبدالقیوم خان کوششونه هم د ډیرے ستائینے وړدي۔ دا کالج په کال سنه ۱۹۱۳ء کښې قائم شوے وو۔

په سنه ۱۹۱۴ء کښې د یورپ اول جنګ شروع شو۔ د دے جنګ په شروع کیدو سمدستي په برطانوي هند کښې د سیاسي تحریکاتو د بندش په حقله قوانین جاري شول۔ او حکومت

ټوله توجه د جنګي تياريانو په لور اوګرزوله . او د خلقو نه ئې هم د مرستې خواست اوکړو.
دا جنګ د هندي مسلمانانو د پاره د يو سخت کشمکش او آزمائش موقعه وه . د ترکي
سلطنت عثماني خليفه چه د دنيائ عرب نه بغير په نوره اسلامي دنيا کښې ډير محترم ګڼلے شو.
په دے جنګ کښې د انګريزانو د مخالف ډلے ملګرے وو. د هندي مسلمانانو چه د صوبه سرحد
پښتانه په کښې هم شامل وو. ټولے همدردئ او نيک خواهشات د خليفه عثماني سره وو.
بل طرف ته دوئ د انګريزي حکومت محکوم هم وو . او د انګريزي حکومت وفادارئ دوئ نه
دا تقاضا کوله چه په دے جنګ کښې دوئ د خپلو وسائيلو او ذرائعو په دائره کښې د انګريزي
حکومت مرستے ته ملا اوتړي . برطانوي حکومت هم د دے وضعيت نه ښه خبردار وو. چنانچه
برطانوي حکومت د خپل اسلامي رعيت د اطمينان د پاره په صفا لفظونو کښې دا اعلان کړے
وو چه د فتح په صورت کښې به د خليفه عثماني سره د رواداري او همدردي سلوک او
کړے شي .

د يورپ په دے جنګ کښې د هندي مسلمانانو نه علاوه د صوبه سرحد پښتنو هم
د خپل طاقت په دائره کښې د حکومت قابل قدر امداد اوکړو. د دے مرستے د قدرو قيمت
اندازه د دے نه لګيدلے شي چه په دے جنګ کښې يواځ د صوبه سرحد نه (۸۴۸۲۲)
افراد شامل شوي وو. او د صوبے دولتمندو او شتمنو خلقو د چندے په صورت کښې
يو لوئ رقم ورکړے وو. د دے جنګ په دوران کښې چه څه رنګ ترکي جرمني وفد د امير
حبيب الله خان د مرستے د حصول په غرض کابل ته راغلے وو. د غه شان د جرمني او ترکي
حکومتونو د لورې نه په قبائيلي علاقه کښې هم زور داره پروپيګنډه شروع شوې وه او
قريب وه چه قبائيل د انګريزي حکومت په علاقو په حملو کښې بوخت شوے وے ولے د سر
جارج روس کيپل موجودګي او د هغه قابليت دا پروپيګنډه بے اثره کړه. نوموړے د پښتنو
په خوئ بوئ دا سے پوهه وو چه په جرګو مرګو کښې به ئې د موقع مطابق په يومتل د
خبرو اترو او خيالاتو رخ بدل کړو. د جنګ د شروع کيدو سره سم حکومت هم د قبائيلو په
نسبت خپله رويه بدله کړه . د قبائيلو ماجبونه ئې زيات کړل . او د حفاظت په غرض ئې په
قبائيلي علاقو کښې د سړکونو تعمير شروع کړو. او د هغ ټيکے ئې قبائيلو ته ورکړے . په قبائيلو
کښې به د حکومت د لورې نه دا پروپيګنډه هم په شدت سره کيدله . چه ترڅو امير حبيب
الله خان د انګريزانو خلاف څه اقدام نه وي کړے . تر هغه وخته د قبائيلو مخالفت بالکل ناجائز
او د اسلامي اصولو نه برخلاف دے . په دے جنګ کښې د امير حبيب الله خان دوستي د انګريز

حکومت ډیره پکار شوه - امیر حبیب الله خان د انګریزي حکومت په دوستۍ داسې کلک ولاړ وو - چه د هغه جذبات نه د اسلام په نوم لړزیدل - او نه څه سیاسي فائدے دخپل مسلک نه اړولے شو - دغه وجه وه چه انګریزانو خپل هندي فوځونه په ډیر شمیر کښې د جنګ میدان ته اولیږل - او هم دغه هندي فوځونه د برطانوي حکومت د کټیو لوئے سبب اوګرځیده - د دے جنګ قبائلي پښتنو ته هم په ډیر شمیر کښې د ملازمت موقع په لاس ورکړے - او د دے نتیجه دا شوه چه په دے سختو ورځو کښې په صوبه سرحد او قبائلي علاقو کښې نسبتًا قلاره قلاري وه - او د مشکلاتو باوجود برطانوي حکومت د هندوستان د بے شماره وسیلو په برکت دا جنګ اوګټلو -

هندیانو چه په کوم اخلاص او ارادت سره په دے جنګ کښې د برطانوي حکومت امداد کړے وو - د هغې دا تقاضا وه چه د جنګ نه پس به د دے اولس ته د حکومت خود اختیارۍ په لړ کښې کافي اختیارات ورکړے شي - او د هند خلق په ډیره کلکه د دے خبرے په طمع وو - ولے د جنګ نه پس د هندیانو دا توقعات شنډ اوختل - برطانوي حکومت یواځې دا نه چه د هند خلقو ته ئے د نمائنده حکومت ورکولو نه انکار اوکړو بلکه دخپلے صریحې وعدے او د مسلمانانو د توقع نه بیخي خلاف خلیفه عثماني ته ئے د صلح داسې تباه کن او ذلت آمیز شرطونه پیش کړل چه هغه په هر لحاظ دیو باوقار حکومت د پاره ناجائز وو - د دغه جنګ ذمه واري په جرمني اصولي شوي وه بیا هم د صلح په شرطونو کښې د ترکي حکومت په نسبت د جرمني حکومت سره رواداري او نرمي اختیار کړے شوي وه - او د دے وجه دا وه چه د دے قتل وخون ریزي د ذمه وارکیدو باوجود جرمنیان چونکه د برطانیې او امریکے هم مذهب او عیسایان وو نو دوئ سره نرمي او رواداري اختیار کړے شوه. مګر د ترکي حکومت په باب کښې د عیسائي دنیا جذبات یواځې د سیاسي غلبے د حصول دپاره نه وو پاریدلي - بلکه د مذهبي تعصب جذبات ئے هم لړزیدلي وو - او د دے صلح په موقع د صلیبي جنګونو د انتقام اخستلو کوشش شوے وو - د ترکي حکومت سره د دے صلح په موقع د صلیبي جنګونو د انتقام اخستلو کوشش شوے وو - د ترکي حکومت سره د دے ناوړه سلوک په نتیجه کښې په هندي مسلمانانو کښې د یو عام ناراضګۍ او نفرت تحریک خور شو - د مسلمانانو د دے ناراضګۍ نه هندوانو هم فائده واخستله - او د حکومت برخلاف هندوان هم د مسلمانانو ملګري شول -

په جنګ عظیم کښې چه هندوستانیانو د برطانوي حکومت کوم امداد کړے وو د هغې

په بهال کښې برطانوي حکومت دوئ ته " رولټ ایکټ " ورکړو۔ دا قانون ( رولټ ایکټ ) د هندوستان په سیاسي تاریخ کښې یو انقلابي حیثیت لري۔

ممکنه ده چه که

چرې دا قانون نۀ وے جوړ شوے نو د هند په سیاسیاتو کښې به دومره لوئ او نۀ ختمیدونکے طوفان شاید چه دومره زر نۀ وو راغلے۔ په ۱۹۱۸ء کښې حکومت هند د "سر سډنی رولټ" په مشرئ کښې یوه کمیټي په دے غرض قائمه کړه چه د سیاسي مجرمانو د پاره د سزا او تادیبي کاروایانو په سلسله کښې خپل رپورټ پیش کړی۔ او د دے خبرے وضاحت اوکړی چه د سیاسي مجرمانو سره څه رنګ سلوک بکار دے۔ او دوئ ته به کوم قسم سزا ګانے ورکول موزونیت لري۔

دے کمیټۍ په خپل رپورټ کښې د سیاسي مجرمانو سره د داسے قسم سلوک او هغوی ته د داسے قسم سزاګانو ورکولو سفارش اوکړو۔ چه هغه ډیر نارو او وحشیانه او دانتقامي جذباتو نه ډک وو۔ د دے برخلاف په ټول ملک کښې یو طوفان اوچت شو۔ امتجاجي مظاهرے او هنګامے اوشوے۔ او د حکومت نه دا مطالبه اوشوه چه په دے سفارشونو ډِ هرګز عمل اونۀ شي۔ دا رپورټ چه کوم وخت د بحث د پاره د وائسرائے په امپیرئیل کونسل کښې پیش شو نو قائد اعظم مرحوم ( چه هغه وخت لا صرف مسټر محمد علی جناح وو ) د دے رپورټ په مقله په خپل تاریخي تقریر کښې دا اوو ئیل:۔

" د مجرمانه سیاسي سازشونو مسئله رولټ کمیټۍ څه په دے شان رااوچته کړی ده چه ګوندے څنے جرائم پیشه قبائیل په موبز کښې ناڅاپه راپیدا شوی دی۔ او اوس دا خبره ضروری شوی ده چه د دوئ د ورکولو او بیخ ایستلو د پاره ډِ قانون جوړ کړے شي۔ ولے قانون جوړول د مرض علاج نۀ دے۔ تاسو ته خپله پالیسي بدلول بکار دی۔ دا مجرمانه سازشونه به خپله بند شي۔ دے کمیټۍ داسے سفارشونه کړی دی چه هغه یو مهذب حکومت هم نۀ شي قبلولے۔ بلکه تصورئے هم نۀ شي کولے "

په ملک کښې د دے قانون د همه ګیر احتجاج باوجود حکومت دا قانون منظور کړو۔ چنانچه مسټر جناح د احتجاج په ډول د وائسرائے د امپیرئیل کونسل نه استعفٰی ورکړه۔ د رولټ قانون د منظوریدو نه پس په ملک کښې بلوے او هنګامے شروع شوے۔ او په ټول ملک کښې دا اور خور شو۔ د هند د دے تحریکا تو اثر صوبه سرحد ته هم رااورسید۔ په دے علاقه کښې هم د حکومت برخلاف جلسے شروع شوے۔ او یو عام اړے ګړے جوړ شو۔ په ۱۱ اپریل ۱۹۱۹ء په

امرتسر کښې د یو دوؤ لیډرانو د گرفتارۍ په موقع لویه هنگامه اوشوه- او د دے په سبا په ۱۳ ر اپریل ، جنرل ډائر ، په حکم جلیانواله باغ کښې داولس په یوځے وسلے غونډه گولئ اوچلولے شوے- او د دے په نتیجه کښې په سوونو بےگناه خلق ژوبل او اووژلے شول- د امرتسر نه دا اور په ټول پنجاب کښې خور شو - او د پنجاب د نزدیکت په وجه دا اور صوبه سرحد ته هم راورسید- په ټوله صوبه کښې د دے قانون برخلاف د نفرت اظهار اوشو- جلسے به کیدلے، جلوسونه به وتل - او خلقو به په ډیر جوش و خروش سره د خپلے ازادۍ خواهش د جذباتو اظهار کولو- په هندوستان کښې د رولټ ایکټ برخلاف د اولسی تحریک واگے مهاتما گاندهی په خپل لاس کښې اخستلے وے- او د حکومت بر خلاف د عوامو دا تحریک په با قاعده او منظمه طریقه خور شوے وو- ولے په دغه ورځو کښې په صوبه سرحد کښې یو سیاسی جماعت هم نهٔ وو- او نهٔ په دے صوبه کښې د سیاسی تحریکونو د جاری کیدو څه امکان وو- ځکه چه دا صوبه په اصلی معنو کښې سرزمین بے آئین وه- سره د دے چونکه دا صوبه انگریزی حکومت د هر قسم اصلاحاتو نه محرومه ساتلی وه- او د دے صوبے خلقو دا خبره خپله حق تلفی گڼله- په دے وجه د حکومت برخلاف د خلقو جذبات ډیر پاریدلی وو- په دے لړ کښې نهٔ صرف په ښارونو کښې د حکومت برخلاف جلسے کیدلے- بلکه په اول وار د دے صوبے کلی وال اولس هم د دے تحریک نه متاثر شو- چنانچه په اپریل ۱۹۱۹ء کښې په اول وار د رولټ ایکټ برخلاف په اتمان زو کښې یو عظیم الشانه جلسه اوشوه- دا جلسه د خان عبدالغفار خان په دعوت او کوشش رابللی شوی وه- او په حقیقت کښې د صوبه سرحد په تاریخ کښې دا ورومبئ سیاسی جلسه وه چه په دومره لویه پیمانه شوی وه- په دے جلسه کښې د رولټ ایکټ برخلاف عوامو د خپل شدید نفرت اظهار اوکړو- او د ملک په مختلفو حصو کښې چه انگریزی حکومت په بےگناه اولس کوم ظلمونه کړی وو او گولئ ئے چلولی وے - په ډیرو سختو او تیزو تندو الفاظو کښې ئے د هغے غندنه اوکړه- د دے جلسے نه پس د سرحد حکومت په ډیره لویه پیمانه گرفتاریانے شروع کړے چه په هغے کښې خان عبد الغفار خان او د هغوی والد صاحب هم شامل وو-

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د خلیفه عثمانی سره د برطانوی حکومت ذلت آمیز سلوک یواځے هندی مسلمان نهٔ وو دردمند کړی - بلکه د دے ردعمل د افغانستان په خلقو هم شوے وو - په افغانستان کښې د باثره امیرانو یوه ډله داسے هم وه چه د هغوی په خیال کښې د خلیفه عثمانی شکست د امیر حبیب الله خان د پالیسۍ نتیجه وه- د دغه وجه وه چه په

کال ۱۹۱۹ء کښې امیر حبیب الله خان لغمان (کله ګوش) کښې اووژلے شو. او قاتل ئے معلوم نه شو. او د هغه په ځائے د هغه دریم ځوئے امان الله خان د څه معمولي کوزنی اختلاف نه پس تخت نشین شو.

د امیر امان الله خان د تخت نشینۍ په آغاز کښې په صوبه سرحد او په ټول هندکښې د انګریزي حکومت برخلاف بلوه شوے وو. په دغه ورځو کښې ناڅاپه یوه ورځ په پیښور کښې څه اشتهارونه اونګیدل. چه په هغ باندے د امیر امان الله خان مهرونه لګیدلی وو. او مضمون ئے داوو چه، زهٔ به ډیر زر پیښور ته دراورسم ۔ ددے اشتهارونو د لګیدلو په دریمه ورځ د افغانستان دریم جنګ شروع شو. دا جنګ ډیر زر ختم شو. او د صلح د معاهدے نه پس برطانوي حکومت د صوبه سرحد هغه مشران اوکارکنان چه د جنګ افغانستان او رولټ ایکټ د بلوو په دوران کښې نیولي او قید کړي وو. هغه ئے د قید نه ازاد کړل. ولے د صوبه سرحد په فضا کښې سکون پیدا نهٔ شو. او ډیرزر د هجرت تحریک شروع شو.

د تحریک هجرت اغاز په هندوستان کښې په کال ۱۹۲۰ء کښې شوے وو. ددے تحریک فتوی د لکهنؤ یو عالم مولانا عبدالباري ورکړي وه. او دائے وئیلي وو چه هندوستان دارالحرب دے او مسلمانانو ته ددے نه هجرت پکار دے. ددے تحریک نه د پنجاب او صوبه سرحد خلق زیات متاثر شول. دا یو جذباتي تحریک وو چه داولس د تباهۍ باعث شو. د سرحدي صوبے مشرانو خپل اولس په هجرت کولو اوپارولو. په ټوله صوبه کښې یو ډیر هنګامه خوره شوه خلقو خپل جائیدادونه اومالونه د ګنګلو په بیعه خرڅ کړل. او د خپل ال و عیال سره د افغانستان په لور روان شول. د صوبے د یو سر نه تر بل سره پورے د قیامت علامے څرګندے شوي وے. د سوونو کالو آباد کورونه شاړ شول. ولاړ فصلونه اوسوزولے شول. د لکونو روپو مالونه په سره پیسه خرڅ شول. پلاران د ځامنو او میاندے د لونړو نه جدا شو. په هرلور او هره تپه کښې یو عجیبه غوغا جوړه شوي وه. د زرګونو په شمیر کښې به خلق ډلے ډلے د افغانستان په لور د قافلو په شکل کښې روان وو. او دومره خلق د افغانستان په زمکه وردننه شول چه د افغانستان لمن په دوی تنګه شوه. د افغانستان حکومت د دوئ د قبلولو نه مجبوري ظاهره کړه. دا مهاجرین اوس په دوه رخه تکلیفونو کښې ګرفتار شول. نهٔ وړاندے تلے شول او نهٔ وروستو راتلے شول. آخر په ډیرو خوارو او تکلیفونو او کړاؤنو څنے بیرته راغلل او څنے د سفر کړاؤنو او ولوږو تندو په لارے کښې ختم کړل. د هجرت دا المیه په

ډیره حسرتناکه طریقه ختمه شوه۔

د هجرت دا تحریک بیخي یو غلط جذباتي تحریک وو۔ د دے تحریک په وجه د صوبهٔ سرحد اولس ته حد په صورته ځاني او مالي نقصان اورسیده۔ او عجیبه خبره دا ده چه د جذباتو په سیلاب کښے دغه وخت لویو لویو تجربه کارو رهنمایانو او مشرانو هم د دے په انجام نظر نهٔ کولو۔ او دے خبرو ته چا یو ذره هم فکر نهٔ وو کړے۔ چه دافغانستان غوندے ملک کښے د دے دومره خلقو دا باديدلو او ځائید لو ګنجائش چرته دے۔

د سنه ۱۹۲۰ء په آخر کښے د هجرت تحریک ناکامیابۍ د عوامو زړونه مات کړي وو۔ کوم بدنصیبه مهاجرین چه سر و ملي برو هلي بیرته راغلي وو۔ د هغوی په وړاندے د نوی سرنه د خپل نوی ژوند آغاز کول وو۔ ولے هغوی خو هر څه وړاندے باج کړی وو۔ او د هغ بیا راګرځول ډیر ګران وو۔ هر سړے په خپلو خولو کښے ډوب او په خپل غم کښے ګرفتار وو۔ او دبل چا سره دامداد کولو نه ناچاره وو۔ په داسے حالاتو کښے د عوامو نه په سیاسي تحریکونو کښے د حصے اخستلو توقع خوشي خبره وه۔ د اولس خلق په خپلو مشرانو بےاعتباره شوی وو۔ او مشرانو هم د خپل اولس سره سترګے نهٔ شوے لګولے۔ داسے حالات پیدا شوی وو چه د سیاسي ترقۍ موقع ئے په ظاهره کښے ختم کړے وه۔

ولے دا سیاسي جمود تر ډیرے مودے پاتے نهٔ شو۔ د خلیفه عثماني سره چه د برطانوی حکومت له خوا کوم توهین آمیز سلوک شوے وو، په هغ باندے د هندی مسلمانانو زړونه غلبیل غلبیل وو۔ چنانچه رئیس الاحرار مولانا محمد علي او د هغهٔ محترم وړور مولانا شوکت علي په بمبئ کښے د خلافت د حفاظت په غرض یو مجلس قائم کړو۔ په لږو ورځو کښے د هغ ښاخونه په ټول ملک کښے قائم شول۔ دا تحریک صوبه سرحد ته هم را اورسید۔ او په پېښور کښے هم د خلافت کمیټۍ ښاخ قائم شو۔ د دے کمیټۍ په قائیدلو سره په خلقو کښے د خلافت تحریک زر مقبول شو۔ او د ښارونو نه د صوبے کلي وال اولس ته هم اورسید۔ په دے ډول په اول ځل سیاسي کارکنانو ته د پښتنو عوامو سره دکار او تعلق موقع په لاس ورغله۔

په تحریک خلافت کښے د برطانوی حکومت برخلاف هندوان او مسلمانان په یو مرکز جمع شوی وو۔ او په ټول ملک کښے د قومي اتحاد فضا خوره شوی وه۔ هم په دغه ورځو (سنه ۱۹۲۱ء) کښے په پېښور کښے د کانګرس کمیټۍ بنیاد هم کیښودے شو۔ اګر چه د خلافت او کانګرس دواړه تنظیمونه جدا جدا وو۔ ولے د دواړو په مینځ کښے مکمل اتحاد و تعاون وو۔ د دواړو

مقاصد یو او د برطانوی حکومت مخالف وو. په ۱۹۲۳ء کښې د «پرنس آف ویلز» په راتلو د هند په سیاسی تحریکاتو کښې بیا جوش پیدا شو. په دے وخت کښې د صوبه سرحد سیاسی مشران په جیلونو کښې بند وو. او د حکومت د سخت گیرے پالیسۍ په وجه سیاسی کارکنانو او رضاکارانو د پاره په کارکولو کښې ډیر مشکلات حائل وو. د پرنس آف ویلز په دوره کښې پیښور هم شامل وو. د خلافت او کانګرس کمیټۍ د ذمه وارو ارکانو دا اراده وه چه د هندوستان د نورو ښارونو په شان د پرنس آف ویلز د راتلو په موقع په پیښور کښې هم هړتال او مخالفانه مظاهرے کول پکار دی. ولے دا کار په ظاهره کښې ډیر گران ښکاریدو. ځکه چه دا اولس نه دا توقع نۀ شوه کیدلے. ولے د حکومت یوے غلطۍ دا کار اسان کړو. واقعه داسے اوشوه چه د پرنس آف ویلز د راتلو نه یوه ورځ وړاندے یو انګریز افسر د خلافت کمیټۍ یو څو رضاکار گرفتار کړل. د دے رضاکارانو د نیولو خبر سمدستی په ټول ښار کښې خور شو. او د ښار خلقو په دغه ورځ هړتال اوکړو. حکومت ته خپله غلطی معلومه شوه. او زر ئے دغه رضاکاران پرے ښودل. ولے دغه وخت اوبۀ د ورخه تیرے وے. خلقو په دوئمه ورځ هم هړتال اوکړو.

په ۶ مارچ ۱۹۲۳ء پرنس آف ویلز پیښور ته راغے. په چوک یادگار کښې د شاهی دربار انتظام شوے وو. بے شماره فوځ او پولیس په ښار کښې گشت کولو د حکومت وفادارو خانانو او جاگیردارانو په ډیر شمیر کښې خپل خپل دهقانان راوستلی او د جلوس په لار کښې ئے اودرولی وو. د توپو د سلامۍ نه پس شهزاده په ساده لباس کښې راغلو. فوځی باجه او غږیدله. او «راۓ بهادر مهرچند کهنه» د پیښور د خلقو د لورې نه د سپاسنامے اورولو په غرض او دریدلو. دغه وخت د «مهاتما گاندهی کی جے» نعرے شروع شوے. او سمدستی د جوش نه ډک اولس بے قابو شو. او د بدامنۍ خطره پیدا شوه. په دے گړبړ کښې په ډیرے تادۍ پرنس آف ویلز گورنمنټ هاؤس ته اورسولے شو. پولیس د حالاتو قابو کولو ډیر کوشش اوکړو ولے خوندے او نۀ کړو. چه شهزاده د پیښور نه لاړو نو حکومت ټول سیاسی جماعتونه غیر قانونی کړل. د خلافت او کانګرس ډلے مشران ئے اونیول. او د مختلفو معیادونو د قید سزاگانے ئے ورکړے.

لکه چه وړاندے ونیلی شوی دی په ۱۹۰۱ء کښې د پنجاب نه د بیلیدو په وجه د سرحدی صوبې خلق د هغه آئینی مراعاتو نه محروم شوی وو کوم چه د ۱۸۹۲ء د اصلاحاتو په وجه پنجاب ته حاصل وو. د دے نه پس په ۱۹۰۹ء کښې د منټو مارلے اصلاحات هم دے صوبے ته نۀ وو ورکړے شوی. او په ۱۹۱۹ء کښې چه د «مانټیګو چیمسفورډ سکیم» په نامه کوم اصلاحات هندوستانی صوبو ته ورکړے شوی وو. سرحدی صوبه د دے اصلاحاتو نه هم محرومه ساتلے شوی وه. او دا صوبه عملاً

سرزمین بے آئین وه۔

ولے د دے وجه دا نهٔ وه چه ګوندے د دے صوبے خلقو د آئیني اصلاحاتو خواهش نهٔ لرلو. یا ګوندے دا خلق په سیاسي شعور کښې د هند د نورو صوبو د خلقو نه وروستو وو۔ (د دے حقیقت اعتراف د حکومت هند مقرر کړه تحقیقاتي کمیټي (برے کمیټۍ) په خپله هم کړے دے۔ چه ذکر به ئے وروستو اوشي۔) بلکه د دے غټه وجه د حکومت هند هغه پالیسي وه چه د هغې په رڼا کښې به ئے دا صوبه د هر قسم سیاسي اصلاحاتو نه محرومه ساتله۔ ولے د جنګ عظیم او جنګ افغانستان د ختمید و نه پس د دے صوبے په خلقو کښې د هغه ټولو اصلاحاتو د حصول شدید خواهش پیدا شوے وو۔ کوم چه د هند نورو صوبو ته وقتاً فوقتاً ورکړے شوی وو۔ په یو طرف ته د اولسي د لورې نه د اصلاحاتو د حصول مطالبات جاري وو۔ په بل لور د صوبه سرحد د آئیني اصلاحاتو په لار کښې د صوبے د پولیټکل افسرانو نه علاوه د دے صوبے خانان او جاګیرداران او د صوبے غیر مسلم اقلیت هم لوئې بندیز راوستلے وو۔ غیر مسلم اقلیت دا خبره نهٔ شوه برداشت کولے چه د غالب مسلم اکثریت یوه صوبه دِ دَ ائیني اصلاحاتو نه مستفیده شي۔ بلکه د دے بر خلاف دوئ به دا کوشش کولو چه دا صوبه د بیا په پنجاب کښې مدغم شي۔ په دے غرض چه د مسلمانانو د غالب اکثریت یوه صوبه بیخي د میڅ نه اوځي۔ په دے لړ کښې به هندوانو سیکانو کله د قبائیلي پښتنو نه د خپل حفاظت سوال پورته کولو۔ او کله به ئے د دے صوبے د مالي ذرائعو د نیشتوالي مسئلے پیش کولے۔ خانان او جاګیرداران په دے وجه د اصلاحاتو مخالف وو۔ چه د اصلاحاتو په صورت کښې د دوئ په ابائي او موروثي اقتدار کښې د ضعف و زوال خطره پټه وه۔ ولے چه د اصلاحاتو په صورت کښې به د اقتدار واګے د عوامو د نمائندګانو لاس ته راتلے۔

به هر حال د عوامو د شدیدے مطالبے په رڼا کښې حکومت هند په سنه ۱۹۲۲ء کښې صوبه سرحد ته د اصلاحاتو ورکولو د جاج اخستلو په غرض د حکومت هند د خارجه معاملاتو د سکتر مسټر برے په مشرۍ کښې د اتو ممبرانو یوه تحقیقاتي کمیټي مقرر کړه۔ په دے کمیټۍ کښې درے انګریزان، درے مسلمانان او دوه هندوان وو۔ دے کمیټۍ د هغه ټولو خبرو جاج واخست د کومو په بنا چه دا صوبه د پنجاب نه بیله کړے شوی وه۔ او په دے خبره ئے هم غور اوکړو۔ چه د دے صوبے د پنځو ضلعو به بیا د پنجاب سره دوباره ادغام تر کومه حده موزون او مفید وی۔ دوئ د دے خبرے هم تحقیق اوکړو چه د صوبه سرحد د خلقو د سیاسي خواهشاتو تکمیل تر کوم حده ممکن دے۔ او د دے صوبے ته به کوم قسم اصلاحات ورکول موزون وی۔

د دے کمیټۍ د تحقیقات نه پس دا رائے ظاهر کړو چه ټول قبائیلي علاقه په حقیقت کښې یو وحدت

دے۔ په دے لړکښے دوئ د سنه ۱۸۹۷ء واقعاتو ته اشاره اوکړه چه دغه وخت ټول قبائيل دانګريزي حکومت برخلاف پاريدلي وو۔ دوئ دا اووے چه محسود دوزيرو سره وزير د زوئيشت سره، زوئيشت داوړک زو سره، اوړک زی دافريدو سره، افريدی د مهمندو سره، مهمند د باجوړ باجوړ د دير، دير د سوات، سوات د بونير، دسنده غاړو (د اباسين د غاړے پښتانه) او سنده غاړے د کوه سياه د پښتنو سره مربوط او تړلي دی۔ او دوئ د يو بل نه په انتظامي لحاظ سره نهٔ شي جدا کيدلے۔ د حکومت هند د اقدام د پاليسئ په باب کښے دوئ دا اووئيل چه په ټولو قبائلي علاقو باندے فوځی قبضه حاصلول که څه هم دا معقوله هم اوګڼلے شي يو داسے کار دے چه د دے په تکميل به کالونه لګی۔ او په دے لړکښے چه د کومو فوځی اخراجاتو د واقع کيدو امکان دے په موجوده حالاتو کښے د هغے تصور هم نهٔ شي کيدلے۔

د صوبه سرحد د پښتو ضلعو اولس ته د اصلاحاتو په لړکښے دوئ دا رائے ښکاره کړه چه د دے صوبے خلق نهٔ خو په ذهنيت کښے او نهٔ د خپلو معاملاتو د سرانجام کولو په صلاحيت کښے په هيڅ صورت د هند د نورو صوبو د خلقو نه وروستو دی۔ په دے خلقو کښے د اصلاحاتو د حصول جذبات په شدت سره پاريدلي دی۔ او د دے تسکين ضروري دے۔ او د هغه اصلاحاتو نه کوم چه د هند په نورو صوبو کښے جاری شوی دی به په کمو اصلاحاتو دوئ قانع نهٔ شي۔ د مشاورتي کونسل ورځ اوس تيره شوی دی۔ د دوئ د پاره لېجسليټو کونسل لازمي دے۔ د دے کونسل شکل چه هر رنګ وی ولے دا د ژوندے او مقتدر وی۔ په دے لړکښے دوئ صوبه سرحد ته داسے کونسل ورکولو سفارش کړے وو چه په هغے کښے به ديرش ممبران وو۔ دوئ د خانانو او قبائلي مشرانو اهميت ته زور ورکړے وو۔ کميټئ د يو وزير سفارش کړے وو چه د هغهٔ سره به هغه منتقله شعبه جات وو کوم چه په هغه ورځو کښے د هند په نورو صوبو کښے د وزيرانو سره وو۔ غير مسلم اقليت ته روئ د خپلے آبادئ نه دوچنده نمائندګي ورکړی وه۔ د کونسل پريذيډنټ سرکاری افسر تجويز شوے وو۔ او که ضرورت محسوس شوے وے نو يو آنريري ډپټي پريزيډنټ به هم وو۔ دوئ د دے يقين اظهار کړے وو۔ چه که څه د اصلاحاتو په ذريعه د دے پښتو ضلعو نه موثر تهذيبي اقدامات په قلاره قلاره په قبائلي علاقو کښے لاره اوموهي۔ نو د هند په شمال مغربي مخدوش او پرخطر سرحد باندے به د مضبوط، مطمئن پښتون قام طاقت د مغرب د لوری نه د هر خطرے په وړاندے يو مضبوط دفاع ثابت شي؛ ليکن حکومت هند د دے کميټئ سفارشات اونهٔ منل۔

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د تحریک خلافت په وخت کښے د هندوانو او مسلمانانو ترمینځه د اتحاد فضا قائمه شوی وه - د تحریک خلافت بانیانو مولانا محمد علی مرحوم او مولانا شوکت علی مرحوم د رواداری او هندو مسلم اتحاد په خاطر د خلافت تحریک واګے مهاتما ګاندهی ته حواله کړے وے - او ګاندهی جي په حکم د حکومت سره د عدم تعاون تحریک شروع شوے وو - لیکن څه رنګ چه د هجرت په تحریک کښے مسلمانانو ته لوئے زیان رسیدلے وو - دغه شان د عدم تعاون په تحریک کښے هم مسلمانانو ته لوئے زیان اورسید - د عدم تعاون په نتیجه کښے مسلمانانو سرکاری نوکرئ پرے ښودلے - مدرسے او کالجونه ئے شاړ کړل - د سرکاری ټیکو نه ئے انکار اوکړو - د علی ګړه مسلم یونیورسټي د ګور غاړے ته او رسیده - ولے د بنارس په هندو یونیورسټۍ تود باد هم او نه لګید - د انګریزی رفت و باٹیکاټ په وجه د بمبئ او احمد آباد هندوان کارخانه دار د مارانو نه ښامارا ن شول - او مسلمانان د پولۍ پړق ته کښیناستل - اګر چه څنے وطن پرستو هندوانو لکه په مثال کښے سبهاش چندر بوس او داسے نورو د او چتے پائے هندوانو وکیلانو په دے تحریک کښے سرګرمه حصه اخستی وه - ولے په مجموعی حیثیت په دے تحریک کښے زیات نقصان مسلمانانو ته اورسید - غرض په ټول ملک کښے د حکومت برخلاف د نفرت جذبات په جوش و خروش کښے وو - د انګریزی مال باٹیکاټ په سختۍ سره جاری وو - په ملک کښے به جلسے کیدلے ، جلوسونه به و تل - دا جلسے په صوبه سرحد کښے هم په ډیر جوش و خروش جاری وے - په دے جلسو کښے به عموماً یو نظم وئیلے شو - چه د دغ د بند شعر به داسے وو - ے

**بولی اماں محمد علی کی :: جان بیٹا خلافت په دیدو**

د عدم تعاون تحریک په سلسله کښے به د فخر قوم میاں کاکا خیل مرحوم یادول هم بے ځایه نه وی - د فخر قوم میاں نامه حمید ګل او د زیارت کاکا صاحب او سیدونکے وو - د حکومت هند په سروے ډیپارټمنټ کښے یو لوئے عهده دار وو - او د خپل ملازمت په سلسله کښے ئے په ایران ، افغانستان او څنے نورو ملکونو کښے د حکومت هند د پاره قابل قدر خدمتونه کړی وو - او د دے خدماتو په سلسله کښے ورله د حکومت له خوا ډیرے تمغ او انعامونه ورکړے شوی وو - د عدم تعاون تحریک په سلسله میاں صاحب مرحوم هم د خپلے عهدے نه د حکومت ترغیباتو باوجود استعفیٰ ورکړه - او په تحریک خلافت کښے شامل شو - او په خپل اخلاص او قابلیت ئے په دے تحریک کښے یو نوے جوش پیدا کړو -

میاں صاحب مرحوم د خدمت وطن په جرم کښے څو واره قید هم شو - او په مالی لحاظ

ئے هم ډیر نقصانونه اوچت کړل۔ ولے یو تکلیف او یو مصیبت هم د هغهٔ په ارادو کښے تزلزل پیدا نهٔ کړے شو۔ میاں صاحب مرحوم د انګریزی حکومت په مخالفت داسے ټینګ وو۔ چه باوجود د دے چه وروستو په مالی لحاظ سره ډیر پریشان وو۔ ولے د خپلے بقایا تنخواه او د خپل پراویډنټ فنډ د وصولولو نه ئے هم انکار اوکړو۔ او د انګریز د مخالفت کوم هود چه ئے نیولے وو۔ د مرګ تر اخری سلګئ په هغے کلک ولاړ وو۔ میاں صاحب مرحوم ورقبے سړے وو چه د سیاسی تحریکاتو سره ئے د صوبه سرحد دکلی وال اولس په روښناس کولو کښے لویه برخه لرله۔

لکه چه اوویئلے شول د عدم تعاون تحریک په ټول ملک کښے خور وو۔ او په دے سلسله کښے اکثر لوئ لوئ لیډران او مشران نیولے شوی او په جیلونو کښے بند وو۔ چنانچه دسمبر ۱۹۲۲ء په اخر کښے د دے تحریک په دوران کښے د تشدد څه داسے واقعات اوشول۔ چه د هغے په وجه د مهاتما ګاندهی د دے تحریک د بندولو اعلان اوکړو۔ او تحریک په خپلو مقاصدو کښے بیخی ناکامیاب شو۔ په بل لور ترک قام د مصطفیٰ کمال اتاترک مرحوم په مشرئ کښے د خلافت عثمانی په ځائے جمهوری حکومت قایم کړو او خلیفه ئے معطل او د ملک نه اوویستلو۔ دغه وخت هندی مسلمانانو ته د خلیفه عثمانی د بحالئ او همدردئ څه جواز پاتے نهٔ شو۔ او عملاً تحریک خلافت ختم شو۔ د تحریک خلافت په دوران کښے چه د هند وانو مسلمانانو ترمینځه کوم اتفاق و اتحاد قائم شوے وو۔ هغه اوس د فرقه پرستو هندوانو د لاسه ختم شو۔ فرقه پرست هندوانو د مسلمانانو برخلاف په دغه ورځو کښے یو دوه تحریکونه شروع کړل۔ چه یو ته به ئے شدهی۔ او بل ته به ئے سنګهټن وئیل۔

د تحریک شدهی اصلی بانی سوامی دیانند سرسوانی وو۔ ولے په دغه ورځو کښے دا تحریک شردهانند نومے یو هندو راژوندے کړے وو۔ د دے تحریک مقصد دا وو چه مسلمانان د اسلام نه هندو مذهب ته واړوی۔ او په هندوانو کښے ئے مدغم کړی۔ په دے لړ کښے فرقه پرستو هندوانو به د هرے وسیلے نه کار اخستلو، جلسے به ئے کولے۔ په اخبارونو کښے به ئے مضمونونه لیکل۔ پمفلټونه به ئے شائع کول۔ هندوان به ئے د مسلمانانو د ابادئ د زیاتیدو نه ویرول۔ ځنے هندوانو به په واز کوی دا هم وئیل چه هندوستان د هندوانو دے۔ اوکه چرے مسلمانان په دے ملک کښے اوسیدل غواړی نو هغوی ته پکار دی چه هندو مذهب اختیار کړی۔ د مسلمانانو په باب کښے چه د هندوانو کوم جذبات وو۔ د هغے اندازه د دے شعرونو نه په ښهٔ شان لګیدے شی۔

*کام شدھی کا کبھی بند نہ ہونے پائے ۔۔ بھاگ سے وقت یہ قوموں کو ملا کرتے ہیں*

ہندوو! تم میں ہے گر جذبہ ایماں باقی
رہ نہ جائے کوئی دنیا میں مسلمان باقی

ولے د همه ګیرے پروپیګنډے او وسیع مالی ذرائعو باوجود هم هندوان په دے خپل مقصد کښے کامیاب نهٔ شول. په عامو مسلمانانو خو د دے تحریک هډو څه اثر نهٔ کیدو. البته د پنجاب او راجپوتانے په یو حصه کښے "ملکانیان" د راجپوتو یو قوم وو چه هسے په سرخو مسلمانان وو. ولے د مسلمانئ باوجود ځنے قدیمی هندوانه رسومات او عقائد ئے هم لرل. په دے خلقو کښے د شدهی تحریک څه لږ شان کامیاب شوے وو. ولے مسلمانانو هم د دے په مدافعت کښے د تبلیغ و تنظیم په نومونو تحریکونه شروع کړل. او د هندوانو په لار کښے ئے بندیز راوستلو.

د سنګهټن تحریک بانی یو فرقه پرست هندو ډاکټر مونجے وو. د دے تحریک مدعا دا وه چه هندوان د مسلمانانو په مقابله کښے متحد شی. او په جسمانی لحاظ سره دومره قوت حاصل کړی. چه د مسلمانانو د قوت و غلبے کومه ویره چه په هندوانو پرته ده هغه ترِ لرے شی. په دے لړکښے هندوانو د مسلمانانو اقتصادی بائیکاټ هم اوکړو. او د مسلمانانو هرے کارنامے ته به ئے د عیب ګوته نیوله. او د هندوانو په زړونو کښے به ئے د مسلمانانو نه نفرت پیدا کولو. او لکه چه اووئیلے شول. د دے تحریکونو په مقابله کښے د مسلمانانو له خوا هم د تبلیغ و تنظیم په جامه تحریکونه شروع شول. او د دے نتیجه دا شوه چه په ملک کښے د یو سر نه تر بله سره پورے د فرقه وارانه فسادونو اور اولګیدو. په دے فسادونو کښے د کوهاټ هندو مسلم فساد د ذکر وړ دے.

دا فساد په ۹-۱۰ر ستمبر ۱۹۲۴ء کښے شوے وو. او د دے فساد باعث د جیون داس[1] نوے یو هندو یو نظم[2] وو. دا سړے د "سناتن دهرم هندو سبها" سکتر وو. په دے نظم کښے د مسلمانانو د مذهب توهین شوے وو. مسلمانانو د دے توهین برخلاف د احتجاج په ډول یو جلوس اوښکلو. ولے په دے جلوس هندوانو د خپلو بالاخانو نه ډزے اوکړے. او ډیر

---

[1] دا هندو د لاچئ (کوهاټ) استوګن وو.

[2] د دے نظم یو دوه شعرونه دا دی. ے

بنائیں گے کعبے کو ہم جا کے مندر ❊ مسلماں کو ہستی مٹانی پڑے گی،
اٹھاؤ مصلّے سنبھالو نمازیں ❊ تمہیں بھی یہ گھنٹی بجانی پڑے گی

مسلمانان ئے شهیدان کړل. هندوان د دے فساد ته دوړاندے نه تیار وو. دکو حاټ په مسلمانانو باندے د دے ناروا ظلم په وجه دخوااوشا مسلمانان هم دخود نه اووتل. او دے فساد ډیر خطرناک نوعیت اختیار کړو. او په دے کښے دواړو فرقو (هندوانو، مسلمانانو) ته ډیر ځانی او مالی نقصان اورسید. دغه شان یو فساد په ډیره اسماعیل خان کښے هم اوشو. د ملک په نورو ښارونو کښے هم دغه رنګ فسادونه شروع وو. دے فسادونو دا خبره ثابته کړه چه د د هندوانو او مسلمانانو ترمینځه اتحاد نهٔ ممکن وو. او نهٔ آئنده د دے څه امکان کیدے شی.

د "مانټیګو چیمسفورډ سکیم" د اجراء په وخت کښے حکومت انګلستان دا اعلان کړے وو. چه لس کاله پس به حکومت یو کمیشن په دے غرض مقرروی چه هغه د دے خبرے جاج واخلی چه هندوستانیانو د ورکړے شوی اصلاحاتو نه څومره فائده اخستی ده. او دا چه دوئ ته نور څومره او څه قسم اختیارات ورکول پکار دی. چنانچه په ۱۹۲۷ء کښے لارډ اروِن وائسرائے هند دحکومت انګلستان له خوا د دے کمیشن د راتیرلو اعلان اوکړو. دکمیشن د انګلستان د پارلیمنټ په شپږو ممبرانو مشتمل وو. او دکمیشن صدر سرجان سائمن نومیدهٔ. او دهغهٔ په نوم داکمیشن د "سائمن کمیشن" په نامه مشهور شو. د هندوستان مشرانو د دے کمیشن په ساخت اعتراض اوکړو. او مطالبه ئے اوکړه چه په دے کتاب کښے دِ په برابر تناسب هندوستانیان هم شامل کړے شی. دا مطالبه او نهٔ شوه منلے. نو هندوستانیانو د دے کمیشن بائیکاټ او کړو. او چه دا کمیشن هر ځائے ته لاړ د دے برخلاف هرتالونه او احتجاجی مظاهرے اوشوے.

سائمن کمیشن په نومبر ۱۹۲۸ء کښے پلیښور ته هم راغے. اګرچه د هندوستان په نورو ښارونو کښے د دے کمیشن برخلاف څه زور داره مظاهره اونهٔ شوه. اګرچه د کانګرس کمیټۍ یو دوو ممبرانو لاله امیرچند بهموال او لاله پیرا خان دکمیشن برخلاف څه چغ وهلے وے. ولے په لویه پیمانه څه مظاهره اونهٔ شوه. او په مجموعی طور کمیشن ته هرکلے وئیلے شوے وو. په پلیښور کښے د دے کمیشن سره هندوانو، سیکانو، پښتنو خانانو جاګیردارانو او ځنے ازاد خیاله مسلمانانو د جرګو او وفدونو په شکل کښے لیدل کتل اوکړل. او خپلے خپلے مدعاګانے ئے ورله پیش کړے.

د صوبه سرحد د خانانو او لویو لویو زمیندارانو یو وفد د زیدے د خان بهادر عبدالغفور خان مرحوم په مشرئ کښے دے کمیشن ته یو لیکلے شوے یادداشت پیش کړو. په دے یادداشت کښے دوئ د صوبه سرحد د پاره هم د هند د نورو صوبو په شان د مساوی اصلاحاتو مطالبه کړی وه. او دا ئے وئیلی وو چه په صوبه سرحد کښے دِ هم یو کونسل قائم کړے شی چه د

اختیاراتو له مخه د نورو صوبو د کونسلونو سره برابر او سیال وی - په یاد داشت کښې دا خبره هم وئیلې شوی ده چه د دے صوبے اکثر خلق د هند د نورو فرقو نه جدا او د خپلو قامی خصوصیاتو او روایاتو ، دودونو دستورونو د پاره یو منظمه ضابطه لری - د غه وجه ده چه دوئ د حکومت په اداره کښې انقلابی او ګرندئ تبدیلیانے نهٔ غوښتوی - دوئ دا مطالبه هم کړی وه - چه د صوبے په کونسل کښې دِ یو برخه ممبران منتخب او دوه برخے ممبران نامزد وی ؛ په دے لړ کښې دا خانان د حکومت دا فسرانو سره په دے وجه هم خیال وو - چه د منتخب ممبرانو د اکثریت په صورت کښې د دوئ سره د خپل خاندانی او موروثی اقتدار د کمیدلو ویره وه - دوئ په مرکزی اسمبلئ کښې د ځلورو نشستونو او په "کونسل آف سټیټ" کښې د درے نامزدو ممبرانو مطالبه کړی وه - دے وفد د مخلوط انتخاب حمایت په دے شرط کړے وو چه که چرے هندوستان او سیکان هم په مخلوط انتخاب رضا وی - دحکومت په نورو مقامی ادارو (لکه ډسټرکټ بورډ او میونسپل کمیټئ) کښې هم دوئ د نامزد ممبرانو د اکثریت مطالبه پیش کړی ده -

په دوئ پسے د هندوانو وفد د "رائے بهادر ټهاکر دته" په مشرئ کښې د کمیشن سره ملاقات اوکړو - هندوانو هم خپل مطالبات په تحریری شکل کښې پیش کړی وو - په خپلو مطالباتو کښې دوئ صوبه سرحد ته د آئینی اصلاحاتو ورکولو شدید مخالفت کړے وو - د دوئ د مخالفت اصلی وجه دا وه چه د آئینی اصلاحاتو په ورکولو کښې دوئ د هند په سرحد باندے د یو داسے صوبے په قیام رضامند نهٔ وو چه په هغ کښې د داسے مسلمانانو اکثریت وو - چه هغه د خپلو مخصوصو او صافو خاوندان او د خپل جغرافیائی محل وقوع له کبله د ډیر اهمیت ور وو - هندوانو په خپل یاد داشت کښې دا خبره هم کړی وه چه ترڅو د سرحد پښتانهٔ مذهب د سیاست نه جدا او نهٔ ګڼی - تر هغ به هندوان د دے صوبے ته د سیاسی مراعاتو ورکولو مخالفت کوی - سره د دے دوئ دا هم وئیلی وو چه که د اصلاحاتو ورکول ضروری دی - نو په دے صورت کښې دِ د دے صوبے هندوانو ته هم هغه شان حقوق او مراعات ورکړے شی کوم چه د هند په نورو صوبو کښې یورپی عیسایانو ته ورکړے شوی دی - دوئ د مرکزی اسمبلئ د پاره د ځلورو نشستونو مطالبه کړی وه - او په هغ کښې ئے دوه نشستونه هندوانو د پاره غوښتلی وو - هندوانو په دے خپل یاد داشت کښې د هندوستان د کانګرسی هندوانو د پالیسئ هم سخته غندنه کړی وه -

د سیکانو وفد د کمیشن سره د سردار راجه سنګهه په مشرئ کښې اولیدل - دوئ په خپلو

مطالبو کښې دا وئیلی وو چه سیکان په صوبه سرحد کښې یو اهم اقلیت دے۔ دوئ حکومت ته ډیر زیات انکم ټیکس ورکوی۔ او د تعلیم په میدان کښې د صوبې د ټولو خلقو نه وړاندے دی۔ دوئ دا هم وئیلی وو چه سیکان د پنجاب وروستنی حاکمان وو۔ او د سرحد صوبه انګریزانو د سیکانو نه اخستی وه۔ دوئ دا مطالبه کړی وه چه اګرکه د دوئ آبادی په سلو کښےړیو) ده ولے دوئ ته دِ د صوبې په کونسل کښے (۲۵) فیصد نشستونه ورکړے شی۔ دوئ د نشستونو د تحفظ سره د مخلوط انتخاب حمایت کړے وو۔

د کمیشن سره د صوبه سرحد د ترقی پسندو مسلمانانو یوے جرګے هم د خان بهادر سعدالدین خان ایډیشنل جوډیشنل کمشنر په مشرئ کښې ملاقات اوکړو۔ دوئ په خپلو مطالباتو کښې د صوبه سرحد د پاره د هند د نورو په شان مکمل اصلاحات غوښتی وو۔ دوئ دا وئیلی وو چه د صوبه سرحد خلق د هند د نورو صوبو نه په هیڅ شان کم نهٔ دی۔ او هیڅ وجه نهٔ شی کیدے چه دا صوبه دِ د اصلاحاتو نه محرومه کړے شی۔ د دے اعتراض په باب کښې چه د دے صوبې مالیات د خپلو اخراجاتو کفالت نهٔ شی کولے۔ دوئ دا وئیلی وو چه چونکه دا صوبه حکومت هند د هندوستان د محافظت په غرض تشکیل کړی ده نو دا زیاتی اخراجات دِ هم حکومت هند برداشت کوی۔ دوئ دا یقین هم ظاهر کړے وو چه د مسلمانانو لاس ته د اختیاراتو په راتلو به هندوانو او سیکانو ته هیڅ خطرات نهٔ لاحق کیږی۔ ځکه چه د دے صوبې د خلقو مرګ ژوند هم د نورو صوبو سره تړلے دے۔"

دا خبره هم د فکروړ ده چه کمیشن ته د سرحدی صوبې د حکومت افسرانو او د پولټیکل محکمے حاکمانو هم خپله رائے څرګنده کړی ده۔ دا افسران او حاکمان د سرحدی صوبې د اصلاحاتو شدید مخالف وو۔ دوئ په دے موقع هم هغه د سرجارج روس کیپل د زمانے د" بارودخانے او اورتیلی" نظریه پیش کړه۔

سائمن کمیشن د صوبې د مختلف الخیال افرادو او سرکاری افسرانو د رائے معلوملو نه پس بیرته لاړ او خپل سفارشونه ئے مرتب کړل۔ ولے د دے کمیشن سفارشات د هند د هرے ډلے سیاسی مشرانو مسترد کړل۔ ځکه چه هندوستانی مشرانو ته یوځل بیا د اتفاق واتحاد موقع پیدا کړه۔ ولے دا موقع هم کانګریسی هندوانو د خپل اکثریت په غرور کښې عبث کړه۔ واقعات داسے وو چه د سائمن کمیشن د سفارشاتو د استرداد په موقع وزیر هند" لارډ برکن هیډ" هند ـ وستانی مشرانو ته دا چیلنج ورکړو چه هندوستانیان په دومره سیاسی ډلو کښې ویشلی دی او هره سیاسی ډله په بلے سیاسی ډلے دومره بے اعتبا ده ده چه دوئ نهٔ خو د برطانوی حکومت

پیش کړه تجاویز منظوروی او نهٔ د خپل ځان نه یو داسې متفقه دستور پیش کولے شی چه د ټولو سیاسی ډلو پرے امتنا وی۔

د وزیر هند دا پیغور کانګرس منظور کړو۔ او د پنډت موتی لعل نهرو په مشرئ کښے ئے یوه کمیټی جوړه کړه۔ په دے غرض چه د هندیانو د پاره یو داسے آئین مرتب کړی چه هغه د ټولو فرقو د خواهشاتو او مطالباتو آئینه دار وی۔ دے کمیټئ د هندوستان هرے سیاسی ډلے ته د تعاون او مرستے خواست اوکړو۔او دائے اووئیل چه د هرے فرقے معقول او جائز مطالبات به په رپورټ کښے شاملولے شی۔ په دے موقع مسلمانانو د مسټر جناح په مشرئ کښے دا فیصله اوکړه چه که کانګرس د مسلمانانو کم نه کم مطالباتو منلو ته غاړه کیږدی نو مسلمانان به د سائمن کمیشن سفارشات نامنظور کړی۔ او د کانګرس ملګرتیا به اوکړی۔ دے کمیټئ ته مسلمانانو دا مطالبات پیش کړل۔

(۱) سندھ دِ د بمبئ نه جدا کړے شی او ځان له دِ صوبه شی۔

(۲) صوبه سرحد او بلوچستان ته دِ د هند د نورو صوبو په شان درجه ورکړے شی۔

(۳) د پنجاب او بنګال په صوبو کښے دِ نمائندګی د ابادئ په تناسب وی۔

(۴) په مرکز کښے دِ د مسلمانانو نمائندګی د دریے برخے نه کمه نهٔ وی۔

کانګرس دا مطالبات او نهٔ منل۔او په ګوجه مسلمانانو نهرو رپورټ نامنظور کړو۔او دا خبرہ یو ځل بیا ثابته شوه چه هندوان د مسلمانانو جداګانه هستئ منلو ته تیار نهٔ دی۔ د دے نه پس مسلمانان من حیث القوم د کانګرس نه جدا شول۔او څه لږ شان مسلمانان چه مشرئے مولانا ابوالکلام ازاد مرحوم وو د کانګرس سره پاتے شول۔

په کال ۱۹۲۹ء د مارچ په میاشت کښے په دهلی کښے د مسلم لیګ یو جلسه اوشوه۔ په دے جلسه کښے محمد علی جناح خپل تاریخی نکات پیش کړل۔ او دا رائے ئے ظاهره کړه چه د هند په راتلونکی آئین کښے به د مسلمانانو مطالبات هم داوی دا نکات داسے وو:-

(۱) آئنده دستور دِ په وفاقی شکل کښے وی۔ چه د مرکز او صوبو ترمینځه به ئے اختیارات تقسیم شوی وی۔

(۲) ټولو صوبو ته به په یو شان خود مختاری ورکولے شی۔

(۳) په ملک کښے به اسمبلئ او نورے منتخبے ادارے په داسے طریقه جوړولے شی چه په هغے کښے د اقلیتونو نمائندګی پوره پوره وی۔ خو داسے هم نه چه اکثریت په اقلیت بدل شی یا د هغے برابر شی۔

(۴) په مرکزي اسمبلۍ کښې به د مسلمانانو نمائندګي دوېمه برخه وي۔

(۵) انتخابات به جداګانه وي۔ ولې هرې فرقې ته به دا حق حاصل وي چه کله ئې خوښه شي نو د جداګانه انتخاب په ځائې د مخلوط انتخاب غوره کړي۔

(۶) که چرې د صوبو د نوي حد بندۍ ضرورت پيښ شي نو دوباره حد بندي به په داسې ډول کيږي چه د بنګال، پنجاب او سرحد په مسلم اکثريت څه اثر او نهٔ غورزوي.

(۷) ټولو فرقو ته به مذهبي ازادي حاصله وي۔

(۸) په يو منتخب اداره يا اسمبلۍ کښې به څه داسې تجويز يا د هغ څه حصه نهٔ شي منظوريدې چه د هغ مخالفت د يوې فرقې (¾) حصه ممبران په دې وجه اوکړي چه دا تجويز يا د هغ حصه د دې فرقې د مفادو برخلاف ده۔ په داسې حالاتو کښې د څه بل قسم موزون او قابل عمل طريقه اختيار کړې شي۔

(۹) سندهه د بمبئ نه جدا کړې شي۔

(۱۰) صوبه سرحد او بلوچستان ته د هم د نورو صوبو په شان اختيارات ورکړې شي۔

(۱۱) په دستور کښې د يو داسې دفعه شامله کړې شي چه سرکاري ټولو ملازمتونو يا د حکومت په مقامي ادارو کښې به د قابليت مطابق مسلمانانو ته خپله برخه پوره پوره ورکولې شي۔

(۱۲) په آئين کښې د داسې پيش بندي اوساتلې شي چه د مسلمانانو د ثقافت، تعليم، ژبې، مذهب، شخصي قوانين او وقف ادارو محافظت پرې اوشي۔ او دوئ ته به د مرکز له خوا پوره پوره مدد ورکولې شي۔

(۱۳) په مرکز يا صوبو کښې به داسې وزارت نهٔ جوړيږي چه په هغ کښې کم از کم دوېمه برخه مسلمانان وزيران نهٔ وي۔

(۱۴) مرکزي اسمبلي به تر هغه وخته په آئين کښې ترميم نهٔ شي کولې ترڅو چه د هند د وفاق ټولو صوبو د هغ سره اتفاق نهٔ وي کړې۔

په ستمبر ۱۹۲۹ء کښې د اتمان زو په مقام د "انجمن اصلاح افاغنه" يا "افغان جرګې" په اهتمام کښې يو لويه جلسه اوشوه۔ په دې جلسه کښې د "افغان يوته ليګ" تشکيل او شو۔ او د دې زير اثر په کليو کښې د تنظيم کار شروع شو۔ او د سن ۱۹۳۰ء په ابتدا کښې خدائي خدمتګارانو برتي شروع شوه۔ د دې رضا کارانو مقصد دا وو چه دوئ په جلسو کښې ضبط و

نظم ساتی۔ او مختلف فرائض او خدمات به کوی۔ د رضا کارانو د دے تنظیم نوم "خدائی خدمتګار" کینښودلے شو۔ په ۱۶، اپریل سنه ۱۹۳۰ء کښے د اتمان زو په مقام د "افغان جرګے" له خوا د کسان کانفرنس په نوم یوه لویه جلسه اوشوه۔ په دے جلسه کښے د سیاسی جماعتونو نه علاوه نور ډیر خلق هم د زرګونو په شمیر کښے شامل شول۔ په دے جلسه کښے د خدائی خدمتګارانو د تنظیم د باقاعده کولو فیصله اوشوه۔ په ابتدا کښے د دے رضاکارانو د پاره د سپینے خمتا وردی تجویز شوی وو۔ ولے دا به زر خیرنیدله، نو ددی د پاره نسواری رنګ وردی تجویز کړے شو۔ په دے وجه دا رضاکاران وروستو د سرخپوشو په نامه مشهور شول۔ د صوبه سرحد په سیاسی تاریخ کښے د سرخپوش تنظیم قربانئ د ډیرے ستائینے وړ دی۔ د سرخپوش تحریک د سیاسی اصولو سره اتفاق یا اختلاف یو جدا سوال دے۔ ولے دے کښے هیڅ شک نشته چه دا هم د دے تنظیم د قربانیو برکت وو۔ چه صوبه سرحد خپل سیاسی منزل مقصود ته اورسولو۔ دا تنظیم وروستو د سیاسی حالاتو په نتیجه کښے د کانګرس په تنظیم کښے مدغم کړے شو۔ او د سرخپوشو په قربانیو د کانګرس په قوت او شهرت کښے هم قابل قدر اضافه اوشوه۔

په ابتدا کښے خان عبدالغفار خان او د هغهٔ نورو ملګرو د سیاسیاتو نه ځان ژغورولے وو۔ د دوئ دا اراده وه چه د پښتون قام د خرابو رسمونو رواجونو اصلاح اوکړی۔ او په پښتنو کښے د حصول علم جذبه راوپیښه کړی۔ د انګریزانو په دور کښے هسے هم د پښتنو د تعلیمی ترقئ نه بے توجهی اختیار کړے شوی وه۔ او پښتانهٔ هم په خصوصیت سره په انګریزی سکولونو کښے د تعلیم حاصلولو نه متنفر وو۔ د دے نتیجه دا وه چه پښتانهٔ بچی په خوفناکه طریقه د علم نه بے بهره وو۔ په دے عرض خان عبدالغفار خان په سنه ۱۹۲۴ء کښے د انجمن اصلاح افاغنه په نوم یو انجمن تشکیل کړے وو۔ د خان عبدالغفار خان دا تحریک په اصل کښے د هغه تحریک یو نوے شکل وو۔ کوم چه د دے نه څه موده اګاهو د پښتنو مشهور مجاهد اعظم حضرت حاجي ترنګزئ په علاقه کښے شروع کړے وو۔ د حضرت حاجي صاحب د دے تحریک مقصد دا وو چه د پښتنو د معاشرے نه دِ خلافِ شرع رسومات لرے کړے شی۔ او په دوئ کښے د علم دین د حصول مینه پیدا کړی۔ دا تحریک څه موده په زور و شور چلیدهٔ۔ ولے چه حاجي صاحب د مهمندو علاقے ته هجرت اوکړو نو بیا په کښے هغه جوش نه وو پاتے شوے۔ چنانچه هم د غه تحریک خان عبدالغفار خان انجمن اصلاح افاغنه په نوم بیا راژوندے کړو۔ د دے تحریک په چلولو کښے د خان عبدالغفار خان نه علاوه د خادم محمد اکبر مرحوم، میاں احمد شاه بیرسټر مرحوم، قاضی عطا الله خان مرحوم، میاں جعفر شاه کاکا خیل او خان عبدالاکبر خان او خداے نورو

مشرانو کوششونه او خدمتونه دستائینے وړ دی۔ د دے انجمن په نګرانئ کښے په اتمان زو کښے یوه ازاده مدرسه چلیدله چه د دینی او دنیوی دواړو تعلیمونو انتظام په کښے موجود وو۔ داتمان زو د مدرسے نه علاوه په نورو کلیو کښے هم دغه شان مدرسے قائمے وے۔ او په دے مدرسو کښے د سوونو په شمیر کښے ماشومان په حصول تعلیم کښے لګیا وو۔ په دے مدرسو کښے به د کتابي تعلیم سره د ذهنی تربیت خیال هم ساتلے شو۔ او په دے ډول دے مدرسو د قام یو لوئے ضرورت پوره کولو۔

په کال ۱۹۲۹ء د دسمبر په میاشت کښے کانګرس خپله سالانه جلسه په لاهور کښے اوکړه۔ په دے جلسه کښے د هندوستان د مکمل ازادئ تجویز پاس کړے شو۔ او د سول نافرمانئ فیصله هم اوشوه۔ چنانچه په مارچ ۱۹۳۰ء کښے د «ډانډی» په مقام د مالګے په جوړولو سره د سول نافرمانئ اغاز اوکړے شو۔ ولے مسلمانانو په اول وار په قوی لحاظ سره د دے سول نافرمانئ فیصله اوکړه۔ چنانچه د اپریل په دویمه هفته کښے د پلینبور په شاهي باغ کښے د کانګرس د پروګرام مطابق د مالګے جوړولو اعلان اوشو۔

په سرحدی صوبه کښے د کانګرس بنیاد په ۱۹۲۱ء کښے ایښے شوے وو۔ ولے عملاً دے تولی په دے خپل نوم په عام اولس کښے شهرت نهٔ وو موندلے په دے ورځو کښے په صوبه سرحد کښے ټولے سیاسی سرګرمئ عملاً د مجلس خلافت زیر اقتدار جاری وے۔ ولے وروستو چه په هند کښے د کانګرس د رویّے په نتیجه کښے مسلمانان من حیث القوم د کانګرس نه جدا شول۔ نو په صوبه سرحد کښے هم په مسلمانانو کښے اختلاف پیدا شو۔ او په ۱۹۲۹ء کښے د صوبه سرحد مسلمانان په دوؤ ډلو (کانګرس او خلافت) کښے تقسیم وو۔ ولے عام اولس د دے نه ناخبره وو۔ او دوئ به د کانګرس سرګرمئ هم د مجلس خلافت سرګرمئ ګڼلے۔

د ۱۹۲۴ء نه ۱۹۳۰ء پورے خان عبدالغفار خان او د هغهٔ ملګرو نهٔ خو د کانګرس سره او نهٔ د بل یو سیاسی تحریک سره څه خاص تعلق لرلو۔ اګرچه د مجلس خلافت، عدم تعاون او هجرت په تحریکونو کښے دوئ په سرګرمئ حصے اخستلے وے۔ ولے د دوئ په وړاندے د پښتنو د اصلاح الرسوم پروګرام وو۔ د دوئ دا خیال وو چه ترڅو چه پښتون قام د ژوند په هره لاره کښے د هند د نورو قامونو سره سیال نهٔ شی تر هغه پورے دا خپل تحریک په دے خپله علاقه او خپلو خلقو پورے محدود ساتل پکار دی۔ اګرچه د ملک د ازادئ د شدید خواهش پیش نظر د کانګرس د مقاصدو سره د دوئ همدردی وه۔ او د تماشګیرو مبصرینو په ډول به د کانګرس په جلسو کښے هم شاملیدل۔ ولے د دوئ دا شمولیت به غیر رسمی او د دوئ د خپلے

مرضئ مطابق وو. دوئ خپل جداګانه حیثیت او پروګرام برقرار ساتلے وو. لیکن په سن۱۹۳۰ء کښے چه په صوبه سرحد کښے کوم واقعات اوشول. هغه په خپل نوعیت کښے داسے وو چه د پښتون غونډے ازادی پسند قام د پاره ئے لاس تر زنې کښېناستل او د تماشګیرو حیثیت اختیاروِل ناممکن کړل.

د هندی مسلمانانو په تاریخ کښے بالعموم او د صوبه سرحد په تاریخ کښے بالخصوص د سن۱۹۳۰ء کال په یو څو وجوهاتو ډیر اهمیت لری. یعنی :-

(۱) د هندوستان د مسلمانانو د سیاسی جدوجهد مقصد هم په دے کال متعین شو. دا مقصد وستو د پاکستان په نامه مشهور شو. چه تفصیل به ئے په خپله موقع اوشی.

(۲) د ... غه کال د اپریل په میاشت کښے د پېښور د قصه خوانئ بازار د فائرنګ خونړئ واقعه اوشوه. او د دے په وجه په ټول صوبه سرحد کښے د انګریزی حکومت مخالفت او دشمنئ شدت اختیار کړو.

(۳) هم په دغه کال د کانګرس تحریک په صوبه سرحد کښے عروج بیا موند. او لر موده پس د خدائ خدمتګارانو په بے مثاله قربانیو د شهرت انتها ته اورسیده.

(۴) هم په دغه کال د ملک د ازادئ تحریک دے صوبے ته راغوند شو. او په مجموعی ډول د دے صوبے خلقو دومره قربانئ ورکړے وے چه جیلونه ورنه ډک شول. او د ملک نورو جیلونو ته اولیږلے شول.

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی د هند د مرکزی کانګرس کمیټئ د هدایاتو په رڼا کښے د صوبه سرحد کانګرسی کمیټئ هم د سول نافرمانئ فیصله کړی وه. او د دے د پاره د ۲۳ اپریل سن۱۹۳۰ء ورځ په شراب خانو باندے د پکټنګ د پاره مقرر شوی وه. د خپل پروګرام جاری ساتلو په غرض دوئ یو " وارکونسل " هم تشکیل کړے وو. ولے حکومت هم د دوئ د ارادو نه خبردار وو. او د وخت نه اګاهو ئے د دوئ د نیولو فیصله کړی وه. کانګرسی ممبران هم د حکومت د ارادو نه خبر وو. او دا ئے فیصله کړی وه چه د پروګرام نه اول د ګرفتارئ نه بچ کیدل پکار دی. ولے د کانګرس څنې ممبران د دے فیصلے نه اګاه نهٔ وو. دغه وجه وه چه د ۲۳ اپریل په شپه د کانګرس نهه ممبران د پولیس په لاس ګرفتار شول. صرف دوه ممبران د شپے د ګرفتارئ نه بچ پاتے شول. دا دوه ممبران د ۲۳ تاریخ په سحر د کانګرس په دفتر کښے اونیولے شول. د ممبرانو د ګرفتارئ خبر سمدستئ په ټول ښار کښے خور شو. او ډیر خلق د جلوس په شکل کښے د دوئ سره ملګری شول. په دے موقع دے

ممبرانو په خپله کابلۍ تاڼې ته د ورتلو پیشکش اوکړو - پولیس هم دوۍ پرے ښودل - او دا ممبران د جلوس سره کابلۍ تاڼې ته لاړل - او ځان ئے ورکړو -

دغه وخت د کابلۍ تاڼې په وړاندے د حد نه زیات اولس جمع شوے وو - چه د انقلاب زنده باد چغې به ئے اوښکلے - او د ممبرانو د پرے ښودلو مطالبه به ئے کوله - د اولس شمېر کېنې ساعت په ساعت زیاتے راتلو - او د جوش وخروش په وجه د قابو نه بهرکیدونکے وو - په دے وخت کښې ځنے خلقو په تاڼه سنګباری اوکړه - ولے سنجیده او پوهه خلق د پارټۍ او اولس په پوهولو کښې لګیا وو - دے حالاتو د پولیس سره ویره پیدا کړه - او ډپټي کمشنر نه ئے د فوځ د راغوښتلو خواست اوکړو - چنانچه لږ ساعت پس یو آرمرډ کار په ډیرے تندۍ د کابلۍ دروازے ته راورسیده - ولے د ډرائیور د بے پروائۍ له کبله ئے یو سړے چیتنے کړو - په دے وجه د اولس جوش وخروش نور هم زیات شو - او حالات د قابو نه بهر شول - په وروستی آرمرډ کار پسے څلور نور هم راغلل - او په دوی پسے یو فوځی افسر په موټر سائیکل سور راروان وو - دغه افسر د هجوم یو سړی په تبر اووهلو - او مړے ئے کړو - په دے پسے سم بل آرمرډ کار ته اور واچولے شو - او پارټۍ اولس په تاڼه باندے سنګ باری شروع کړه - د حکومت د اعلان مطابق په دے سنګ بارۍ کښې ډپټي سپرنټنډنټ پولیس او ډپټي کمشنر هم سخت ژوبل شول - دغه وخت ډپټي کمشنر د فائرنګ حکم اوکړو - او مشین ګنونو نه په اولس د ګولیو باران شروع شو - خلقو تیښته اوکړه - ولے ګوره فوځ په دوی پسے په ګلیو کوڅو کښې هم لاړ - او خلق ئے په ګولیو اوپیرل - د قصه خوانی بنګلے بازار د مړو ډیره شو - په دے خونړۍ واقعه کښې چه څومره خلق مړه شوی وو - د هغو درست اندازه او نه ګکیده - ځکه چه حکومت د امړی په ډیره پراسراره طریقه غیب کړل[1] -

د قصه خوانی د فائرنګ د واقع نه پس په پېښور ښار کښې د دهشت دوره وه - د ښار انتظام د ګوره فوځ په لاس کښې وو - ګرفتارۍ شروع وے - ولے درے ورځې پس د ښار نه فوځ لرے کړے شو - دغه وخت پولیس هم د ذمه وارۍ اوچتولو نه انکار کړے وو - چنانچه درے ورځې د ښار د ټریفک انتظام د کانګرس په لاس کښې وو - په دغه اثنا کښې د صوبه

---

[1] د حکومت د اعلان مطابق په دے فائرنګ کښې د مړو تعداد شل او د زخمیانو تعداد دیرش ښئیلے شوے وو - دا هم وئیلی شوی وو چه شاید د زخمیانو تعداد به ډیر وی - ولے د اولس په افواهګانو کښې چه د څومره مړو تعداد ښئیلے شوے وو - د هغې تردید شوے وو -

سرحد چیف کمشنر سر نارمن بولټن د صوبه سرحد نه بیرته اوغوښتلی شو . او فوځ بیا په پیښور قبضه اوکړه . په ۳۰ ، اپریل خان عبدالغفار خان هم اونیولے شو . او درے کاله قید کړے شو . د حکومت د لورې نه د خبرونو په لیږلو سنسر هم اولګیدهٔ . دغه وجه ده چه د پیښور د دے واقعاتو نه تر ډیره حده د بهر دنیا خبره نهٔ وه . ولے د کانګرس رضا کارانو په پر اسراره طریقه دا خبرونه پنجاب ته اورسول . او د پنجاب په اخبارا تو کښے د حکومت برخلاف غوغا پورته شوه . چنانچه د تحقیقاتو په غرض د هند مرکزی کانګرس د ، وی . جے پټیل په مشرئ کښے صوبه سرحد ته یوه کمیټی را ولیږله ولے حکومت سرحد د دے کمیټی داخله په سرحد کښے ممنوع کړه د ے کمیټی په راولپنډئ کښے د پیښور د حادثے تحقیقات اوکړهٔ . ولے حکومت د دے رپورټ په اشاعت هم پابندی والګوله .

د قصه خوانئ په دے خونړئ واقع د قبائیلی علاقو پښتانهٔ هم ډیر غمژن شوی وو . دغه وجه وه چه په قبائیلی علاقو کښے هم د حکومت برخلاف اقدامات شروع شول . چنانچه د جون د میاشتے په پنځم تاریخ شپږ بجے د ورځے د افریدو یو لښکر د پیښور په علاقه کښے راننوت دا لښکر دوه ورځے د انګریزی فوځونو سره په جنګ کښے ښکیا وو . او په ۷ ، جون بیرته لاړ . په ۱۳ اګست د افریدو یو بل لښکر د پیښور علاقے ته راغے . او د خوا و شاکلی وال اولس په مرسته دوئ د پیښور په مال ګودام حمله اوکړه . توله شپه د انګریزی فوځ او افریدو ترمینځه ګولئ اوچلیدلے . په دغه وخت کښے د افریدو او مهمندو ترمینځه د اصلاح شوی وه . چه افریدی به په پیښور حمله اوکړی . او په بل لور به مهمند په شبقدر چپاؤ اوکړی . ولے حکومت د دے صلاح نه خبر شوے وو . دغه وجه وه چه د مهمندو ځنے خلق حکومت په خپله پره راوا ړول . او د دغوی حمله ئے ناکامیابه کړه .

په دغه ورځو کښے تقریبًا په ټوله قبائیلی علاقه کښے د حکومت برخلاف جذبات پاریدلی وو . اګرچه په ملاکنډ ایجنسئ کښے د دیر او سوات نوابانو په خپلو ریاستونو کښے د حکومت برخلاف جذبات قابو کړی وو . لیکن د دے ایجنسئ اتمان خیلو قبیلے د حکومت برخلاف سرګرمئ شروع کړے وے . دا سرګرمئ وروستو د الینګار فقیر په مشرئ کښے نورے هم زیاتے شوے . دغه شان په کرمه ایجنسئ کښے د اورک زو قبیلے یو څانګے او ، څوکنو . د حکومت برخلاف اقدامات کول . په مهمندو کښے د حضرت حاجی صاحب مرحوم د موجودګئ په وجه په دے قبائیلو کښے د حکومت برخلاف جذبات پاریدلی وو . د مهمندو سرګرمئ د مئ نه د نومبر پورے جاری وے .

د ۲۳ ، اپریل د واقع نه پس په صوبه سرحد کښے هر قسم جلسے او جلوسونه بند وو . په ۵ ، مئ مهاتما ګاندهی نیولے شوے او د هغهٔ په ګرفتارئ په هند کښے هړتالونه شوی

وو۔ په صوبه سرحد کښې هم د دے قانون د ماتولو په غرض خادم محمد اکبر مرحوم ، میاں جعفر شاه کاکاخیل، سالاررب نواز خان، اوغلام محمد خان په لوند خوړ کښې په ۱۱ رمئ یو جلسه اوکړه۔ په دے جلسه کښې غلام محمد خان اونیولے شو۔ او درے کاله قید شو۔ د دے نه پس په پیښور ضلع کښې سول نافرمانئ شدت اختیار کړو۔ په ۲۸ ، مئ د مردان په تکر نوے کلی کښې بیا یو جلسه اوشوه۔ په دے جلسه کښې ډیر رضاکار گرفتار شول۔ د گرفتارئ په دے هنگامه کښې د پولیس یو اسسټنټ سپرنټنډنټ (مسټر مرفی) اووژلے شو۔ د دے په بدل کښې گولئ اوچلیدے۔ چه د هغې په نتیجه کښې اویا کسه مړه او یو نیم سل کسه ژوبل شول۔

د اگست په میاشت کښې د وائسرائے په حکم په صوبه سرحد کښې د مارشل لا د نافذکیدو اعلان اوشو۔ او سمدستی د پیښور په ضلع کښې نافذ شو۔ (دغه وخت د مردان ضلع هم په پیښور کښې شامله وه۔ د کانگرس جماعت خلاف قانون شو۔ په هر قسم جلسو او جلوسونو پابندئ اولگیدلے۔ د مقدماتو د سماعت د پاره د مارشل لاء د لاندے عدالتونه قائم شول۔ په خدائی خدمتگارانو ما په هورته تشدد شروع شو۔ د دوئ مالونه جائدادونه ضبط کړے شول۔ د دوئ سره به توهین آمیز سلوک کیدلو۔ او د ډرو سزاگانے به ورکیدلے شوے۔ د دوئ د جذباتو پارولو کوشش به کیدو۔ ولے د هر قسم تشدد باوجود د خدائی خدمتگارانو تحریک په عروج کښې وو۔ په ټوله صوبه کښې د حکومت برخلاف جذبات پاریدلی وو۔ خصوصاً د پیښور او بنوں په ضلعو کښې۔ په دغه وخت کښې لا د خدائی خدمتگارانو تحریک په خپل انفرادی حیثیت کښې قائم وو۔ او د کانگرس سره ئے الحاق نه وو شوے۔ په دے ورځو کښې د حکومت د لوړی نه په اتمان زو، بنوں او کوهاټ ، ډیره اسماعیل خان کښې د جلسو د منتشر کولو په لړ کښې گولئ هم چلیدلے وے۔

په نومبر سنه ۱۹۳۰ء کښې برطانوی حکومت د هند د سیاسی کشالے د حل معلومولو په غرض د هند د سیاسی ډلو مشران د جرگے د پاره لندن ته اوبلل۔ په دے جرگه کښې کانگرس د نه شاملیدو فیصله اوکړه۔ دا جرگه د گول میز کانفرنس په نامه یادیږی۔ په دے جرگه کښې د کانگرس نه بغیر د هند د نورو سیاسی ډلو مشران او د هندی ریاستونو نمائندگان شامل شول۔ ولے څه فیصله او نه شوه۔ او خبره بلے موقع ته ملتوی کړے شوه۔ د دے نه پس وائسرائے هند لارډ ارون په گول میزی جرگه کښې د کانگرس د شمولیت کوشش اوکړو۔ په دے لړ کښې د هندوانو هغه سیاسی مشرانو چه په کانگرس کښې خو نه وو شامل ولے عملاً د کانگرس ملگری وو۔ د کانگرس او حکومت هند تر مینځه خبرے اترے اوکړے۔ او د دے نتیجه دا شوه چه د کانگرس او حکومت

ترمینځه صلح اوشوه ـ کانګرس د سول نافرمانئ تحریک بند کړو ـ او د دے په نتیجه کښے حکومت سیاسی قید یان پرېښول ـ ولے خان عبدالغفار خان او د خدائی خدمتګار تحریک نور مشران او رضا کاران ئے پرے نښول ـ او د دے وجه ئے دا څرګنده کړه چه د سرخپوشو تحریک یو ځان له تحریک دے ـ او د دے معاهدے سره د هغ څه تعلق نشته ـ

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی ـ د خدائی خدمتګارانو په بے مثله قربانیو د ملک د ازادئ تحریک ډیر زور نیولے وو ـ او انګریزی حکومت ته د سرخپوشو د بے پناه جوش، مضبوط عزم او زبردست استقلال نه ډیره خطره پیدا شوی وه ـ او د دے تحریک او د دے د مشرانو د تباه کولو اراده ئے کړی وه ـ په دے موقع سرصاحبزاده عبدالقیوم خان مرحوم چه د حکومت په دائره کښے ئے هم لوئے اثر و رسوخ لرلو ـ او د خپل قام هم همدرد وو د حکومت د دے خو فناکو ارادو نه اګاه شو ـ نو هغهٔ د میاں جعفرشاه په ذریعه چه په دغه ورځو کښے ئے د یو سیاسی مفرور په حیثیت ژوند تیرولو ـ د خدائ خدمتګارانو د تحریک مشرانو ته دا مشوره ورکړه چه څومره زر ممکن کیدے شی خپل تنظیم دِ د هند په یو مضبوط سیاسی جماعت کښے مدغم کړی ـ په دے ورځو کښے خان عبدالغفار خان د ګجرات په جیل کښے نظر بند وو ـ د سرصاحبزاده دا پیغام هغهٔ ته اورسولے شو ـ او د حکومت د لوری نه په سرخپوشو باندے د نارواظلمونو نه هم خبر شو ـ نو هغهٔ د خپلو ملګرو په صلاح د مسلم لیګ مشرانو ته یو وفد په دے غرض اولیږلو چه که مسلم لیګ د سرخپوشو جماعت په خپل تنظیم کښے شاملولو ته تیار وی نو موبز به خپل تنظیم په دے جماعت کښے مدغم کړو ـ ولے په دغه ورځو کښے په مسلم لیګ کښے د داسے کسانو غلبه وه چه هغوی د انګریزانو سره ښکاره مولو ته تیار نهٔ وو ـ نو هغوی د سرخپوشو د شمولیت نه انکار اوکړو ـ په دغه وخت کښے خان عبدالغفار خان ته د مهاتما ګاندهی د لوری نه په کانګرس کښے د شمولیت دعوت ورکړے شو ـ چنانچه هغهٔ دا دعوت منظور کړو ـ او په کانګرس کښے ئے د خپل تنظیم د ادغام فیصله اوکړه ـ او د دے په نتیجه کښے خان عبدالغفار خان هم د جیل نه راخلاص شو ـ ولے په کانګرس کښے د سرخپوش تنظیم د ادغام په وجه د خان عبدالغفار خان او د هغهٔ د ملګرو ترمینځه اختلافات پیدا شول ـ یعنی هر کله چه د ادغام دا تجویز د افغان جرګے ته د توثیق په غرض پیش کړے شو ـ نو غلام محمد خان لوند خوړ په دے موقع اووے چه چونکه د افغان جرګے په پروګرام او مقاصدو کښے د مذهبی رسوماتو اصلاح او د معاشرے د خرابیو انسداد شامل دے ـ او په بل لور کانګرس یو قومی جماعت دے. په دے وجه د کانګرس د ننه به د افغان جرګے د مقاصدو تکمیل ناممکن

شي ـ ځکه دهٔ دا تجویز پیش کړو چه د افغان جرګے مکمل ادغام په کانګرس کښے نهٔ دے پکار ـ بلکه د افغان جرګے خپل انفرادی حیثیت دِ قائم وی ـ او د کانګرس سره دِ ئے الحاق اوشي ـ په دے تجویز مخالف او موافق تقریرونه اوشول ـ ولے خبره روغه نهٔ شوه ـ او نتیجه دا شوه چه د پښتنو مشرانو یوه لویه ډله د میان احمد شاه بیرسټر مرحوم په سرکردګئ کښے د خان عبدالغفار خان نه جدا شوه ـ دوئ د افغان جرګے په نوم خپل ځواځے پروګرام جاری اوساتلو او سرخ پوش جماعت په کانګرس کښے مدغم شو ـ

په سنه ۱۹۳۱ء کښے د لارډ ارون او ګاندهی جي د معاهدے په سلسله کښے سول نافرمانی بنده کړے شوه ـ او حکومت سیاسی قیدیان پرېښول ـ کانګرس په ګول میز کانفرنس کښے شمولیت منظور کړو ـ چنانچه ګاندهی جي د کانګرس د مختارکل په حیثیت لندن ته لاړ ـ او په کانفرس کښے شامل شو ـ په دے کانفرس کښے د صوبه سرحد د لوری نه سر صاحبزاده عبدالقیوم خان د حکومت د یو نامزد ممبر په ډول شامل شوے وو ـ او لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی هندوان، سیکان او د حکومت هند پولټیکل ډیپارټمنټ صوبه سرحد ته د آئینی اصلاحاتو ورکولو سخت مخالف وو ـ د لندن په ګول میزی جرګه کښے چه صوبه سرحد ته د اصلاحاتو مسئله پیش شوه ـ نو په دے لړکښے د نورو خبرو نه علاوه د دے په مخالفت کښے دا هم اووئیلے شول چه دا صوبه ډیره وړه ده ـ او په دومره وړه صوبه کښے یو نمائنده حکومت قائمول مشکل دی ـ د دے په جواب کښے سر صاحبزاده د نورو دلائلو نه علاوه دا هم اووئیل چه وړه اګرچه یو ډیر معمولی ځاندار دے ولے زمونږ په وطن کښے خلق دا په خپل پرتوګ کښے د ډیر تکلیف باعث ګڼي ـ د دے مبناغلی د دے خبرے نه دا مدعاوه چه که برطانوی حکومت د صوبه سرحد د خلقو د سیاسی خواهشاتو د تکمیل نه په انو بانو انکار اوکړی نو د هندوستان په سرحد باندے به د امن وامان خواهش هسے یو خوش فهمی ثابته شی ـ چنانچه برطانوی حکومت هم د حقیقت پسندئ نه کار واخست او صوبه سرحد ته ئے هم د نورو صوبو په شان د مساوی اصلاحاتو ورکولو فیصله اوکړه ـ

غونډ میزی جرګے په لندن کښے ډیرے اوشوے ـ ولے څه خبره روغه نهٔ شوه ـ په سنه ۱۹۳۲ء کښے بیا جرګه اوشوه ـ ولے خبره فیصله نهٔ شوه ـ او د دے وجه دا وه چه کانګرس د نمائندګئ په سوال نهٔ رضا کیدو ـ اخر د کانفرس د شرکاؤ په صلاح د فیصلے اختیار برطانوی وزیراعظم «مسټر ریمزے میکډانلډ» ته ورکړے شو ـ د دے مبناغلی د هند د سیاسی کشالے په حقله یوه فیصله اوکړه چه په «کمیونل ایوارډ» مشهوره شوه ـ او وروستو په ګورنمنټ آف انډیا ایکټ سنه ۱۹۳۵ء کښے شامله شوه ـ

لکه چه اوویلے شول دگول میزی جرگے په نتیجه کښے صوبه سرحد ته هم هغه اصلاحات (مانټیگو چیمسفورډ) کوم چه د هند نورو صوبو ته اګاهو ورکړے شوی وو- په ۱۹۳۲ء کښے ورکړے شول۔ او دا صوبه هم گورنری صوبه شوه۔ سر رالف گرفتھ په ۱۶ اپریل ۱۹۳۲ء د دے صوبے وړومبے گورنر مقرر شو۔ په ۱۸ اپریل وائسرائے هند لارډ ولنګډن د دے صوبے د اولنی کونسل دافتتاح دستوره اوکړه- د صوبے د لیجسلیټو کونسل ممبران په شپیر کښے څلویښت وو- چه ۲۸ په کښے منتخب او ۱۲ په کښے نامزد وو- په منتخب ممبرانو کښے دویشت مسلمانان پنځه هندوان او یو سیک وو- په نامزدو ممبرانو کښے نځه یوروپین، یو مسلمان ۱۰ و یو سیک سرکاری افسرا و څلور غیر سرکاری مسلم ممبران وو۔

صاحبزاده سر عبدالقیوم خان د صوبے د منتقله شعبه جاتو وړومبے وزیر مقرر شو۔ او د زیدے خان بهادر عبدالغفور خان مرحوم چه نامزد ممبر وو د کونسل وړومبے صدر او خان عبدالرحیم خان مرحوم منتخب ممبر نائب صدر او ټاکلے شو۔ شیخ عبدالحمید چه د صوبے د سول سروس یو افسر وو۔ د کونسل سیکرټری مقرر شو۔ دغه شان په دے صوبه کښے په اول وار د اولس د منتخبو ممبرانو په ذریعه حکومت شروع شو۔ د دے کونسل اولنے باقاعده اجلاس په ۱۲ مئی ۱۹۳۲ء د ایبټ آباد په ټاون هال کښے اوشو۔

کونسل د خپل قیام په دوران کښے ۲۳ بلونه پاس کړل چه په کښے دوه بلونه یعنی پبلک ټونکولټي بل (۱۹۳۲ء) او شریعت بل (۱۹۳۵ء) ډیر مشهور دی۔ په وړومبي بل سیر حاصل بحثونه اوشول۔ او ۲۸۵ ترمیمونه په کښے پیش شول۔ ولے اخر ته د څه معمولی تبدیلئ نه پس پاس شو۔ د دے بل پاس کول د کونسل یوه لویه کارنامه وه۔ او د هند په صوبو کښے صوبه سرحد اولنۍ صوبه وه چه دا بل ئے پاس کړو۔ د صاحبزاده صاحب د وزارت د شهرت بل سبب د وزارت هغه حکم وو چه وروستو د «هندی گورمکهی سرکلر» په نامه مشهور شو۔ د دے حکم په موجب د هغه سکولونو د امداد د بندولو حکم شوے وو۔ د کومو سکولونو ذریعه تعلیم چه «اردو» نه وه۔ د دے حکم برخلاف د صوبه سرحد هندوانو سیکانو ډیره غوغا پورته کړه۔ او دا ئے د خپل تهذیب او ثقافت تباهی اوګنړله۔ او د دے برخلاف ئے جلسے شروع کړے، جلوسونه به ئے ایستل۔ د وفدونو په ذریعه به ئے د حکومت نه د دے احکاماتو د واپس کولو مطالبه کوله۔ د پنجاب او هند د نورو صوبو هندوان هم د سرحد د هندوانو په دے مطالبه کښے شامل وو۔ ولے حکومت د دوئ د دے مطالبے منلو

ته تیار نهٔ وو. ولے دا سرکار صاحبزاده صاحب په خپله هغه وخت منسوخ کړو کوم وخت چه د ۱۹۳۷ء سنه د انتخاباتو نه پس د صاحبزاده صاحب د پارټۍ او هندو سیک نیشنلسټ پارټي کولیشن وزارت قائم شو.

په ۳، اگست ۱۹۳۵ء سنه د گورنمنټ آف انډیا ایکټ ۱۹۳۵ء سنه په ابتدا کښے عمل درآمد شروع شو. د دے قانون له مخه صوبه سرحد ته هم د هندوستان د نورو صوبو په شان مکمله صوبه جاتي درجه ورکړے شوه. او په وړومبی ځل په دے صوبه کښے د سیاسی ډلو د پروگرام مطابق انتخابات اوشول. د ۱۹۳۵ء سنه د ایکټ مطابق د صوبه سرحد په قانون ساز مجلس کښے پنځوس ممبران وو. چه ټول به د بالغ اولس په رائے منتخب کیدل. په دے ورځو کښے په صوبه سرحد کښے مسلم لیگ د یو سیاسی جماعت په حیثیت کښے څه اثر نهٔ وو موندلے. دغه وجه وه چه هغه مسلمانانو چه د کانگرس د سیاسی پالیسۍ سره ئے اتفاق نهٔ لرو هغوی په انفرادی حیثیت کښے په انتخاباتو کښے حصه واخستله. او د کامیابیدو نه پس ئے په اسمبلۍ کښے د مسلم نیشنلسټ گروپ " په نامه یوه ډله قاشه کړه. د دے ډلے مشر سرصاحبزاده مرحوم وو. او په دے کښے شپاړس ممبران وو. چه نومونه ئے دا دی:- (۱) سرصاحبزاده عبدالقیوم خان (۲) خان بهادر سعد الله خان (۳) خان صاحب عبدالمجید خان (۴) نوابزاده الله نواز خان (۵) خان صاحب اسد الله خان (۶) عزیز الله خان (۷) کیپټن نواب باز محمد خان (۸) فیض الله خان (۹) پیر سید لعل شاه (۱۰) ملک الرحمان خان کیانی (۱۱) سردار محمد اورنگ زیب خان (۱۲) نواب زاده محمد سعید خان (۱۳) نواب مظفر خان (۱۴) لفټیننټ مظفر خان (۱۵) نصر الله خان (۱۶) میاں ضیاء الدین کاکا خیل.

د کانگرس په ټکټ چه کوم ممبران منتخب شوی وو. دغه په شپیر کښے نولس وو چه نومونه ئے دا دی. (۱) عبد الله خان (۲) عبدالعزیز خان (۳) ارباب عبدالغفور خان (۴) عبد الغفور خان (۵) ارباب عبدالرحمان خان (۶) اکبر علی خان (۷) امیر محمد خان (۸) قاضی عطاء الله خان (۹) لاله بنجو رام (۱۰) فقیرا خان (۱۱) ډاکټر سی. سی. گوش (۱۲) لاله حکم چند (۱۳) میاں جعفر شاه کاکا خیل (۱۴) لاله جمنا داس (۱۵) ډاکټر خان صاحب (۱۶) محمد افضل خان (۱۷) پیر محمد کامران (۱۸) ثمین جان خان (۱۹) زرین خان.

د هندو سیک نیشنلسټ پارټۍ اتهٔ ممبران وو. چه نومونه ئے دا دی:-

(۱) رائے بهادر مهر چند کهنه (۲) سردار اجیت سنگهه (۳) رائے بهادر چمن لال (۴) رائے بهادر ایشر داس (۵) سردار جگت سنگهه (۶) رائے صاحب لاله کنور بهان (۷) رائے صاحب پر مانند،

(۸) رائے بهادر لاله روچي رام-

د دے ډلو نه علاوه د هزارے د ډلورو ممبرانو يوه ډله د ډيموکريټک پارټۍ په نامه هم وه- چه په هغ کښې دا کسان شامل وو- (۱) خان محمد سرور خان (۲) خان صاحب عبصائ خان (۳) خان صاحب راجه عبدالرحمان خان (۴) خان محمد عباس خان- د دے پورته ذکر شوو ممبرانو نه علاوه دازادو ممبرانو يوه ډله هم وه چه په هغ کښې دا درے کسه شامل وو.

(۱) ملک خدا بخش (۲) سردار عبدالرب نشتر (۳) خان پير بخش خان-

د وزارت جوړولو دعوت د گورنر د لوري نه سرصاحبزاده مرحوم ته ورکړے شو- او هغه د هندو سيک نيشنلسټ پارټۍ په اشتراک د صوبے ورومبے وزارت جوړ کړو- په دے وزارت کښے د سرصاحبزاده نه علاوه چه هغه وزيراعلیٰ وو دوه نور وزيران خان بهادر سعد الله خان او رائے بهادر مهرچند کهنه هم وو. د قانون سازے اسمبلۍ ورومبے صدر په اتفاق ملک خدا بخش مقرر شو او د ډيموکريټک پارټۍ يو ممبر محمد سرور خان نائب صدر شو-

د سرصاحبزاده مرحوم په وزارت کانگرس ډله ناراضه وه- او د هغوی دا کوشش وو چه دا وزارت هم په ورومبی سيشن کښے مات کړی- په دے غرض کانگرسی ډلے د هزارے ډيموکريټک پارټۍ سره خبرے اترے شروع کړے- دا پارټي اگرچه په څلورو ممبرانو مشتمله وه- ولے د هرے پارټۍ سره ئے د خپل شموليت قيمت يو وزارت مقرر کړے وو- د سر صاحبزاده مرحوم له خوا د دوئ دا مطالبه پوره نۀ شوه- نو دوئ کانگرس ډلے سره خوړو نه ورنزدے کړل.

په هندوستان کښے د کانگرس هائ کمانډ له خوا د ۱۹۳۵ء د قانون دلاندے ورکړے شوی اصلاحاتو په باب کښے دا رائے ظاهره کړے شوی وه چه په صوبو کښے داسے حالات پيدا کول پکار دی چه دا اصلاحات نا قابل عمل ثابت شی د غه وجه وه چه په هند کښے د کانگرس له خوا د وزارتونو جوړولو کار معطل وو- ولے هرکله چه د گورنر له خوا په صوبه سرحد کښے کانگرس پارټۍ ته د وزارت جوړولو دعوت ور نۀ کړے شو- نو کانگرس هائ کمانډ د صوبه سرحد د پاره خپله پاليسي بدله کړه- او په دے صوبه کښے ئے د کانگرسی وزارت جوړولو اراده اوکړه په دے غرض د اسمبلۍ د دويم اجلاس په موقع مولانا ابوالکلام آزاد مرحوم او ډاکټر راجندر پرشاد د خان عبدالغفار خان په مشکرتيا کښے ايبټ اباد ته راغلل او د صوبائ اسمبلۍ د بجټ سيشن نه ئے وړاندے وړاندے په صوبه کښے د کانگرس وزارت د تشکيلولو په باب کښے د اسمبلۍ د مختلفو ډلو سره خبرے اوکړے. په دے موقع د هندو نيشنلسټ پارټۍ دوه ممبران د خپلے ډلے نه کانگرس ته واوړيدل - کانگرس هائ کمانډ د هزارے ډيموکريټک

پارټۍ ته هم په يو وزارت وركولو رضا شو- دغه شان د (۴۹) ممبرانو په مجلس كښې د كانګرس ډلے شمير (۲۷) ته اورسيد-

په ۳ر ستمبر ۱۹۳۷ء كانګرس پارټۍ د خپل ليډر ډاكټرخان صاحب په مشرۍ كښې د صاحبزاده صاحب د وزارت برخلاف د عدم اعتماد تجويز پيش كړو- دا تجويز د (۲۲) په مقابله كښې په (۲۷) ووټونو پاس شو- او هم په دغه ورځ صاحبزاده صاحب وزارت استعفا وركړه- د صاحبزاده مرحوم دا وزارت پنځه مياشتے قائم وو- د دے نه څه لږموده پس صاحبزاده عبدالقيوم خان په خپل كلی ټوپۍ (ضلع مردان) كښې وفات شو-مرحوم صاحبزاده صاحب د پښتون قام يو لوئے همدرد او محسن وو- د پښتنو په تعليمی ترقۍ كښې چه هغه كوم كوششونه كړی دی د هغے ژوندے ثبوت د پيښور اسلاميه كالج دے- چه نن ورځ د پيښور يونيورسټۍ په عظيمه تعليمی اداره كښې تبديل شوے دے- دصوبے دائينی اصلاحاتو په حصول كښې هم د هغه كوششونه د ډيرے ستائينے ور دی- په دے كښې شك نشته چه د خدائی خدمتګار تحريک بے مثاله قربانيو صوبه سرحد د خپل سياسی منزل مقصو په لور نزدو كولو كښې لويه برخه لرله ولے د دے سره سره د صاحبزاده صاحب مرحوم تدبر، استقلال او په حكومت باندے د هغه اثر و نفوذ هم د دے منزل په رالنږدولو كښې كافی حصه لرله- هغه په خپل ټول ژوند كښې كه په سركاری نوكرۍ كښې وو او كه په ذاتی حيثيت كښې د خپل قام د خدمت د جذبے نه سرشار وو- او د ژوند د اخری سلګۍ پورے د قام په خدمت كښې مصروف وو-

په ۳ر ستمبر ۱۹۳۷ء په صوبه سرحد كښې په اول وار د كانګرس ډلے وزارت قائم شو- په دے وزارت كښې ډاكټرخان صاحب وزيراعلیٰ وو- قاضی عطاءالله خان وزيرتعليم اوديوان بهنجورام ګاندهی د ماليات وزير وو- د ډيموكريټک پارټۍ ممبر خان محمد عباس خان ته په دے وزارت كښې د ځنګلاتو محكمه وركړے شوه-

د كانګرس وزارت د جوړيدو سره سم پنډت جواهرلعل نهرو چه په دے ورځو كښې د آل انډيا كانګرس صدر وو- د صوبه سرحد په دوره راغلو- د پنډت نهرو دا دوره يوه هفته جاری وه- په دے دوره كښې هغه په پيښور، چارسده، اتمان زو، ايبټ آباد، بفه، مانسهره، هری پور، مردان، رسالپور، نوښار، كوهاټ، بنوں او ډيره اسماعيل خان كښې لويو لويو جلسو ته خطابونه اوكړل- په هرځائے كښې د پنډت نهرو استقبال په ډيرے ګرمجوشۍ اوشو- په دے جلسو كښې په زرګونو خلق شامل شوی وو- دا په صوبه سرحد كښې د كانګرس تحريک د عروج

زمانه وه. او په خلقو کښې یو نوے جوش و خروش پیدا شوے وو.

کانګرس وزارت د خپل تشکیل نه پس څنې د ستائینې وړ کارونه اوکړل. په صوبه کښې ئے په اول وار په پرائمری مدرسو کښې پښتو ژبه لازمی کړه. او په مډل جماعتونو کښې ئے ورله د فارسئ، عربئ په شان داختیاری ژبے درجه ورکړه. د وزارت په دے اقدام ټولو پښتنو خوشحالی ظاهره کړه. د دے نه علاوه کانګرسی وزارت د آنربری مجسټریټانو نظام هم ختم کړو. د دے نظام په ختمیدلو هم خلقو د آرام و راحت سا واخستله. د دے نه وړاندے به په مقامی ادارو (د سټرکټ بورډ او میونسپل کمیټئ وغیره) کښې د منتخب ممبرانو سره نامزدممبران هم اخستلے شول. دے نامزدو ممبرانو به په هره جائزه ناجائزه خبره کښې د مقامی افسرانو مرسته کوله. او په دے وجه به اکثر د قامی سنبگړے او بهبود کارونه نیمګړی پاتے وو. کانګرسی وزارت په دے ادارو کښې د نامزد ممبرانو سلسله هم ختم کړه.

د کانګرس وزارت په وړاندے د سیاسی قیدیانو د پرے ښودلو مسئله هم وه. وزارت په خپل اولین فرصت کښې دے اهم سوال ته هم توجه اوکړه. په دے قیدیانو کښې زیاته حصه د هغه قیدیانو وه کوم چه په سنه۱۹۳۱ء کښې د حاتی خیلو (بنوں) په مقام د فوځ او اولس د تصادم په وجه قید شوی وو. دا ټول عمری قیدیان وو. او دوئ په جیله سزا کښې اووه کاله قید تیر کړے وو. چه د وزارت په حکم پرے ښودلے شول. کانګرسی وزارت په خپل بل یو اجلاس (سنه۱۹۳۸ء) کښې ضابطه قوانین جرائم سرحد نومے قانون هم منسوخ کړو. په دغه اجلاس کښې د هزارے، کوهاټ، بنوں او ډیره اسماعیل خان د ضلعو د پاره د آبنوشئ په غرض څه رقم هم مخصوص کړے شو. په دغه ورځو (سنه۱۹۳۸ء) کښې د ملاکنډ د بجلئ د سکیم اجرا د صوبه سرحد د صنعتی ترقئ په لړ کښې یو بنیادی قدم وو.

کانګرس وزارت ابتدائی تعلیم ته همدردانه توجه اوکړه. او د خپل وزارت په اول کال ئے پنځوس پرائمری مدرسے په صوبه سرحد کښې پرانستلے. او څنې پرائمری مدرسے د لوئر مډل او مډل درجے ته اورسولے شوے. دا وزارت په صوبه کښې دوه کاله او درے میاشتے قائم وو. ولے که د دے وزارت قیام په یو لور عام اولس ته فائده اورسوله. نو په بل لور د دے نه د خدائی خدمتګارو تحریک ته هم نقصان اورسید. هغه خدائی خدمتګاران چه د دے تحریک په سلسله کښې ئے ډیرے سختئ اوکړاوُنه تیر کړی وو، مالونه جائدادونه ئے تباه شوی وو او س د خپل وزارت نه د څه فائدے په طمع وو. ولے د زرګونو خلقو مطالبات او خواهشات پوره کول د وزارت د پاره ناممکن وو. او د دے نتیجه دا شوه چه په خدائی خدمتګارانو کښې د

خپل وزارت برخلاف مایوسي او بد دلي پیدا شوه۔

په ستمبر ۱۹۳۹ء کښې د یورپ دوئم جنګ شروع شو۔ په دغه ورځو کښې د هند په اکثرو صوبو کښې کانګرسي وزارتونه قائم وو۔ د جنګ په شروع کښې د کانګرس هائي کمانډ او حکومت د اختلاف په وجه کانګرس خپلو وزارتونو ته د استعفا کانو ورکولو حکم اوکړو۔ په دے لړ کښې د صوبه سرحد وزارت هم استعفیٰ ورکړه۔ او په صوبه کښې ګورنري راج قائم شو۔ د کانګرس د دے پالیسۍ اختیارولو نه دا مدعا وه چه په دے ډول به حکومت د کانګرس مطالبات اومني۔ ولے داسے اونۀ شول۔ حکومت د کانګرس دے رویے ته څۀ خاص اهمیت ورنۀ کړو۔ بل لور ته په هند کښې د قائد اعظم محمد علي جناح په حکم د کانګرسي وزارتونو د استعفیٰ په موقع د ،، یوم نجات ،، دستوره اوکړے شوه۔ او هندي مسلمانانو په ډېر خپله خوشحالي ظاهره کړه۔ د یوم نجات د دستورے په جواز کښې ،په د مسلم لیګ له خوا په کانګرسي وزارتونو کوم الزامات عائد شوي وو هغه په لنډ ډول څۀ داسے قسم وو۔ (۱) د کانګرسیانو په دور وزارت کښې په مدرسو کښې د ،، بندے ماترم ،، نومے یو ترانے وئیل لازمي شوي وو۔ دا یوه داسے ترانه وه چه په دے کښې د هندوانو مشرکانه عقائد په ډېرے ازادۍ ظاهر کړے شوي وو۔ او د مسلمانانو ماشومان د دے ترانے په وئیلو مجبورول د مذهبي مداخلت مترادف وو۔ (۲) هندي ژبه لازمي کړے شوي وه۔ او د واردها تعلیمي سکیم په مدرسو کښې نافذ کړے شوے وو۔ په دے تعلیمي سکیم کښې د قدیم هندو تهذیب او د مهاتما ګاندهي د عدم تشد د فلسفے ستائینه شوي وه۔ (۳) هغه هندوان چه د مسلمانانو د قتل په مقدماتو کښې ماخوذ وو بے د سزا نه پرے ښودلے شوي وو۔ دغه شان نور الزامات هم وو چه په کانګرسي وزارتونو کښې د مسلمانانو د ګیلو او شکایتونو باعث ګرځیدلي وو۔

د ۱۹۳۹ء نه تر ۱۹۴۲ء پورے کانګرس په دے طمع وو چه برطانوي حکومت به د کانګرس مطالباتو ته غاړه کیږدي۔ ولے خوند ئے او نۀ کړو۔ په ۱۹۴۲ء کښې د جنګ حالات د برطانوي حکومت برخلاف په ډېرے تیزۍ روان وو۔ دغه وخت کښې جاپان هم د اتحادیانو بر خلاف د محوریانو سره ملګرے شوے او په جنګ کښې شامل شوے وو۔ او په ډېرے تیزۍ او تندۍ ئے جزائر شرق الهند او د برما ملکونه فتح کړي وو۔ دغه شان هندوستان ته یو لویه خطره پیښ شوي وه۔ په دے وخت کښې کانګرس د سول نافرمانۍ تحریک بیا شروع کړه۔ دا تحریک د ،، هند خالي کړئ ،، په نامه مشهور دے۔ دا یو قسم ځرګند بغاوت وو۔ د حکومت په ادارو به حملے کیدلے۔ سکولونه او سرکاري عمارتونه به سوزولے شول۔ د ریل پټلۍ به نړولے

شوے۔ د پلونو لاندے به بمونه کیښودلے شول۔ په ټول ملک کښے فسادات شروع شوی وو۔ په دے سلسله کښے ټول کانګرسی لیډران اونیولے شول۔ په دوئ کښے د صوبه سرحد کانګرسی رهنمایان هم وو۔ د صوبه سرحد په دے لیډرانو کښے لس کسه د صوبائی اسمبلئ ممبران وو۔ دغه شان په صوبه سرحد کښے په اول وار د مسلم لیګ د وزارت د تشکیل د پاره اسباب پیدا شول۔ په حیثیت د یو سیاسی جماعت مسلم لیګ په دے ورځو کښے په صوبه سرحد کښے څه خاص اهمیت او اثر نهٔ وو پیدا کړے۔ لیکن هغه کسان چه د کانګرس سره ئے اختلافات پیدا شوی وو۔ هغه په مسلم لیګ کښے شامل شوی وو۔ او په دے ډول د صوبه سرحد د اولس د پاره مسلم لیګ د یو سیاسی جماعت په حیثیت نااشنا نهٔ وو۔ چونکه د مسلم لیګ په قسمت کښے د مسلمانانو د سیاسی مطالباتو تکمیل مقدر وو۔ په دے بنا د مسلم لیګ مختصر تاریخ بیانول به بے ځایه نهٔ وی۔

د هندوستان د سیاسیاتو په لړ کښے هندی مسلمانان په دے چاله روان وو چه په قامی حیثیت خو په کانګرس کښے شامل نهٔ وو۔ البته د کانګرس مخالف هم نهٔ وو۔ برطانوی حکومت د ۱۸۵۷ء د جنګ ازادئ ذمه وار مسلمانان ګڼلی وو۔ دغه وجه وه چه د حکومت په دربار کښے د مسلمانانو څه پرسان نهٔ کیدلو۔ سرسید مرحوم مسلمانانو ته دا تعلیم ورکړے وو چه اول په خپلو پښو اودریږی۔ او په سرګرم سیاست کښے حصه مه اخلئ۔ ولے په هره معامله کښے حکومت هم د خپلے کشتئ ماڼکے مهٔ ګڼئ۔

لارډ کرزن چه د هندوستان په انګریزی حاکمانو کښے د یوے مضبوطے ارادے ګورنر جنرل وو۔ څه رنګ چه ئے په سنه ۱۹۰۱ء کښے د سرحد صوبه د پنجاب نه جدا کړی وه۔ دغه شان ئے په سنه ۱۹۰۵ء کښے د بنګال د صوبے د ویش اعلان هم کړے وو۔ او د مشرقی بنګال په نوم ئے د مسلمانانو د اکثریت یوه نوی صوبه تشکیل کړی وه۔ د دے صوبے په تشکیل بنګالی مسلمانانو ته د ترقئ موقع حاصلیده۔ ولے هندوانو د دے تقسیم برخلاف ډیره غوغا پورته کړه۔ او د قتل او خونریزئ بازار ئے تود کړو۔ کانګرس هم چه د هند د ټولو سیاسی فرقو د نمائندګئ دعوئ ئے لرله۔ په دے تقسیم د خپل انتهائی خفګان اظهار اوکړو۔ ولے هر څومره چه به هندوانو د دے تقسیم مخالفت کولو په مسلمانانو به هم د دے رد عمل کیدو۔ او هغوی به د دے تقسیم د برقرار ساتلو کوشش کولو۔ هندوان په دے خبره خفه وو چه څه د پاسه دوه کروړه مسلمانان د هغوی د اکثریت د پنجے نه ازاد شو۔ بل لور ته مسلمانان په دے خبره ټینګ وو چه هغوی ډِ بیا هندوانو ته حواله نهٔ کړے شی۔

د بنګال د تقسیم په وجه چه هندوانو کومه غوغا پورته کړې وه - د دے جواب کښې د مسلمانانو پوهه او سنجیده افرادو د مسلمانانو د حقوقو د حفاظت په غرض د یو سیاسی جماعت د قائمولو فیصله اوکړه - په دے غرض د تقسیم بنګال نه یو کال پس په سنه ۱۹۰۶ء کښې د ډهاکے په مقام د نواب سلیم الله خان په دعوت د مسلمانانو مشرانو په یوے غونډه کښې د مسلم لیګ په نامه د مسلمانانو یو سیاسی انجمن قائم شو - ولے د خپل قیام نه پس مسلم لیګ څه داسے کار او نهٔ کړو چه د هندوانو د شور و شر تدارک پرے شوے وے - البته د دے سیاسی انجمن نه دومره فائده اوشوه چه مسلمانان څه لږ شان منظم شول - او د دوئ اواز څه لږ شان د کور نه بهر ته اووتلو - او په دوئ کښې څهٔ لږ شان سیاسی زړور تیا پیدا شوه - لارډ کرزن خود مضبوط ارادے خاوند وو - په هغهٔ خود هندوانو د شور و شر څه اثر او نهٔ شو - ولے دا صورت حال په خپل حال پاتے نهٔ شو - حکومت هند د هندوانو غلي ته سر ښکته کړو - او یوه فیصله شوی خبره ئے ماته کړه - په سنه ۱۹۱۱ء کښې د دربار دهلی په موقع د بنګال د تقسیم فیصله بیا منسوخه شوه - دا اعلان د مسلمانانو د پاره یو ټند ر او د هندوانو د پاره د خوشحالئ یو زیرے وو -

د بنګال تقسیم او بیا د دے تقسیم تنسیخ مسلمانان د خپلے جداګانه ملی هستئ په حفاظت مجبور کړل - او هرکله چه دوئ ته دا معلومه شوه چه هندوان دوئ په خپل ځان کښې په سیاسی او تهذیبی لحاظ سره مدغم کول غواړی - نو دوئ د خپل ملی انفرادیت قائم ساتلو په غرض د جداګانه انتخاب مطالبه اوکړه - ولے سره د دے چه مسلمانان د جداګانه انتخاب په مطالبے کلک ولاړ وو دوئ د هندوستان د سیاسی ارتقاء د زړه د اخلاصه خواهش مند وو - او د هندوستان د وحدت په لړ کښے ئے د یو ممکن کوشش نه هم مخ نهٔ اړولو - دا درسته ده چه د کانګرس او د هندوانو د غالب اکثریت نه د دوئ ترهه کیدله - او د هندوانو د سلوک، عمل او نیتونو نه د دوئ ګِلے اوشکوے وے - ولے د دے باوجود مسلمانانو کانګرس ته د خپلے مرستے او تعاون لاس وراوږد کړے وو - ولے د بنګال د تقسیم او د دے د تنسیخ نه پس دوئ په دے خبره مجبور شول چه په هره خبره کښې د هندوانو تقلید ضروری نهٔ دے - البته په شریکو معاملاتو کښې د دوئ سره اشتراک او تعاون پکار دے -

په سنه ۱۹۱۵ء کښې مسټر محمد علی جناح چه په دغه ورځو کښې د کانګرس هم یو اعتباری لیډر وو - او د مسلم لیګ واګے ئے هم په لاس کښے وے - د لیګ او کانګرس ترمینځه ئے د اتحاد کوشش اوکړو - په دے غرض چه برطانوی حکومت ته د هندوستانیانو له خوا متحده

مطالبات پیش کړے شي ـ مسټر جناح په دے کوشش کښے کامیاب شو ـ په ۱۹۱۵ء د لیګ او کانګرس دواړو سالانه جلسے په بمبئ کښے اوشوے ـ لیګ په خپله جلسه کښے هغه مطالبات مرتب کړل کوم چه د کانګرس سره د فیصلے د پاره ضروری وو ـ دغه مطالبات بل کال (۱۹۱۶ء) کښے د لکهنئو په اجلاس کښے کانګرس د څه معمولی ردو بدل نه پس منظور کړل ـ او د کانګرس او لیګ ترمینځه معاهده اوشوه چه د « میثاق لکهنئو » په نامه مشهوره ده ـ

لیکن د کانګرس او لیګ دا اتحاد پائیدار ثابت نۀ شو ـ او دا معلومه شوه چه د هندوانو اومسلمانانو په یو مرکز راغونډیدل که ناممکن نۀ دی نو ډیر ګران خو ضرور دی ـ ددے نه پس د هند په سیاسی فضا کښے ډیر طوفانونه راغلل ـ څو ځله د لیګ او کانګرس ترمینځه د صلح صلاحیت کوششونه اوشول ـ مسلمانانو د یوے متفقه روغ په غرض خپل کم نه کم مطالبات کانګرس ته پیش کړل ـ تر دے چه د څینے شرطونو سره د جداګانه انتخاب مطالبے پرے ښودلو ته هم تیار شول ـ مګر په هره موقع کانګرس د هندوستان د ټولو فرقو د واحد نمائندګئ دعویٰ پرے نښودله ـ دغه وجه وه چه د لیګ او کانګرس ترمینځه خبرے څه سراو نۀ نیولو ـ

د کانګرس په مرسته د هندوستان لوئے لوئے سیټهان وو ـ ددے سیټانو پریوانه دولت د کانګرس د پروپیګنډے د پاره وقف وو ـ د کانګرس سره یو مضبوط پریس وو ـ په سیاسی لحاظ سره هم هندوان د مسلمانانو نه وړاندے وو ـ کانګرس خپله رابطه د عوامو سره قائمه کړی وه ـ او په عوامو کښے ددے جرړے زرغونے شوے وے ـ دغه وجه وه چه د کانګرس اواز ډیر مضبوط وو ـ حکومت به هم د کانګرس مطالباتو ته توجه کوله ـ بل طرف ته د هند مسلمانان په سیاسی لحاظ سره ډیر کمزوری وو ـ د مسلمانانو مشران په یو سیاسی مقصد متفق نۀ وو ـ په دوئ کښے بیلے بیلے سیاسی ډلے وے ـ او هره سیاسی ډله د بلے په مخالفت کښے سرګرمه وه ـ څینے مسلمان په کانګرس کښے شامل وو ـ څینې په جمعیت العلماء کښے او څینے د مسلم لیګ حامیان وو ـ د مسلم اکثریت په صوبو کښے د مسلمانانو ځان ځان له سیاسی ډلے وے ـ په مسلم کښے د هغه خلقو اکثریت وو کوم چه د حکومت برطانیه وفادار او تابعدار وو ـ او د حکومت مخالفت ته به ئے مخ نۀ نیولو ـ او په دے کښے څه مخالطه نشته چه په دغه ورځو کښے مسلم لیګ د خانانو، نوابانو او جاګیردارانو یو مخصوص جماعت وو ـ چه د عوامو سره ئے څه رابطه او تعلق نۀ لرلو ـ په سیاسی لحاظ سره خو هغه جماعت مضبوط وی چه د هغې په مرسته عوام ولاړ وی ـ او د هغې ذیلۍ په عوامو کښے ټوکیدلی وی ـ مسلم

لیګ د سنه ١٩٣٥ء نه وړاندې د دې صفاتو نه محروم وو ـ دغه وجه وه چه په صوبه سرحد کښې د مسلم لیګ څه اثر نۀ وو ـ که چرې د مسلم لیګ مشرانو د ابتدا نه د صوبه سرحد د عوامو سره رابطه ساتلې وې نو دا یقیني وه چه په سرحدی اولس کښې به مسلم لیګ مقبولیت موندلے وو. وے اول خو په صوبه سرحد کښې هسې په نوم هم د مسلم لیګ وجود نۀ وو ـ او که چرې کله کله به کومو کسانو د خپلو اغراضو د پاره د مسلم لیګ نوم استعمالولو نو هغه به داسې کسان وو چه عوام به د هغې دلاسه دردیدلی او تنګیدلی وو ـ د عوامو سره د هغوی هیڅ رابطه نۀ وه ـ او نۀ په هغوی د عوامو اعتماد وو ـ دغه وجوهات وو چه د مسلم لیګ په مطالباتو به نۀ کانګرس په سنجیدګۍ غورکولو ـ او نۀ به د حکومت غوږ د دوی په اواز ګریدلو ـ

غرض د هندوستان د سیاسی تاریخ دا دور د مسلمانانو د پاره په قومی لحاظ یو ډیر تاریک او زبون دور وو ـ د دوی په مخکښې څه خاص سیاسی نصب العین نۀ وو ـ د مسلمانانو مشرانو ترمینځه اختلافاتو د کانګرس او حکومت غوږونه د دوی د مطالباتو اوریدلو او منلو په لور کاڼه کړی وو ـ په دې تاریک دور کښې په اول ځل مسلمانانو ته د خپل سیاسی منزل مقصود په لور یوه رڼا ښکاره شوه ـ په کال سنه ١٩٣٠ء کښې د ګول میز کانفرنس د اولے جرګے نه پس د اله اباد په مقام د مسلم لیګ اجلاس د علامه ډاکټر محمد اقبال مرحومؒ په صدارت کښې اوشو ـ په دې تاریخی جلسه کښې په اول ځل د علامه مرحوم له خوا یو داسې تجویز پیش کړے شو ـ چه هغه وخت خو خلقو ورله د یو شاعر د تخیل پیداوار اووئیل ـ ولے ډیر زر هم دغه تصور هندی مسلمانانو د خپل سیاسی مقصد اخری منزل اوګرزولو ـ او وروستو دغه تصور د یو ژوندی حقیقت په شکل کښې د پاکستان په نامه څرګند شو ـ په دې جلسه کښې علامه اقبال مرحوم دا وئیلی وو :ـ

"هندوستان د داسې انسانی ډلو یو براعظم دے ـ چه د هغوی نسلونه مختلف دی، ژبے ئے بیلے او مذهبونه ئے جدا دی ـ د دوی امروزه ژوند په یو مشترک نسلی شعور مبنی نۀ دے ـ په دې بنا د مسلمانانو دا مطالبه بالکل حق به جانب ده ـ چه د هندوستان دننه دِ یو اسلامی هندوستان قائم شی ـ په ذاتی حیثیت کښې زۀ د هغه مطالباتو نه هم یو قدم وړاندې اخلم کوم چه د آل انډیا مسلم لیګ په قرارداد د هلی کښې پیش کړے شوی دی ـ زما دا خواهش دے چه پنجاب ، شمال مغربی سرحدی صوبه ، سنده او بلوچستان دِ یو کړے شی ـ او یو مملکت دِ ترینه جوړ شی ـ د هندوستان په شمال مغرب کښې د مسلمانانو

یو متحده مملکت ماته د مسلمانانو د قسمت اخری فیصله ښکاریږي۔ او دغه الفاظ د پاکستان نظریه پیش کوی۔

د دے نه پس ورو ورو مسلمانانو د ډیرو ازمائښتونو نه پس هم دغه نظریه خپله کړه۔ او په ۲۳ مارچ ۱۹۴۰ء په لاهور کښې د مسلم لیګ د سالانه اجلاس په موقعه هغه تاریخي قرارداد منظور شو چه وروستو د پاکستان په نامه مشهور شو۔ د دے قرارداد الفاظ دا وو۔

دکل هند مسلم لیګ دا نمائنده اجلاس دا اعلان کوی چه د کل هند مسلم لیګ په خیال کښې به تر هغه پورے یو آئین هم په دے ملک کښې د چلیدو نهٔ دے۔ او نهٔ به ئے مسلمانان اومنی۔ ترڅو چه په دے لاندینیو اصولو نهٔ وی جوړ شوے:۔

یعنی دا چه کوم علاقے په جغرافیائی حیثیت سره د یو بل سره نزدے دی د هغوحدبندئ دِ دوباره په داسے طریقه اوشی چه په هغه علاقو کښې چه د مسلمانانو شمیر په کښې زیات وی (مثلاً د هند په شمال مغربي او مشرقي خطو کښې) هغه دِ د ازادو ریاستونو په ډول په داسے طریقه یو ځائے کړے شی چه هریو وحدت ئے ازاد او خودمختاره وی۔

د دے ازادو او خود مختارو وحدتونو په دستور کښې به د اقلیتونو د مذهبي، ثقافتي، معاشي، سیاسي، انتظامي او د نورو حقوقو او مفاداتو د حفاظت د پاره به د هغوی په مشوره مئین او مؤثر تحفظات ورکولے شی۔ او دغه شان به د هندوستان په هغه حصو کښې چه مسلمانان په کښې په اقلیت کښې دی۔ په دستور کښې به هغوی ته مذهبي، ثقافتي، اقتصادی، سیاسی، انتظامي او د نورو حقوقو، مفاداتو په حقله د هغوی په مشوره مؤثر تحفظات ورکولے شی۔

دا نمائنده اجلاس جرګے ته دا اختیار ورکوی چه د پورته ذکر شوی بنیادی اصولو په رڼا کښې دِ یو دستوری سکیم مرتب کړی چه په هغ کښې د دے مجوزه ریاستونو ټولے مسئلے لکه دفاع، خارجي معاملات، د ټک راټک معاملے، د چونګی او نور ضروری کارونو اختیار ورکړے شوے وی۔

د پاکستان دا قرارداد په کانګرس او برطانوی حکومت دواړو ډیر بد اولګید او هر طرف ته د دوئ له خوا د دے مخالفت شروع شو۔ ولے دغه وخت مسلمانانو خپل منزل متعین کړے وو۔ څومره به چه د کانګرس او هندوانو له خوا د دے تحریک مخالفت کیدلو۔ هغومره به دا تحریک په مسلمانانو کښې مقبول کیدلو۔ او دا یو حقیقت دے چه د کانګرس او هندوانو له خوا د پاکستان د مطالبے شدید مخالفت په مسلمانانو کښې دا تحریک دومره زر

مقبول کړو. او په ډیرو لږو ورځو کښې مسلمانانو دا خپله یو داسې سیاسی مطالبه اوګرځوله چه انګریزان او کانګرس دواړه ئې په منلو مجبور شول.

غرض یو طرف ته د کانګرس او مسلم لیګ ترمنځه د پاکستان او اکهنډ هندوستان په حقله سیاسی او کش مکش جاری وو. او په بل لور په جنګ کښې د جاپان د شمولیت په وجه برطانوی حکومت ته ډیرې خطرې ولاړې شوې وې. په دغه وخت کښې "سبهاش چندر بوس" هم په ډیره پراسراره طریقه د هندوستان نه غیب شوے وو. دغه وخت برطانوی حکومت د هندوستانیانو د سرګرم او مخلصانه تعاون حاصلولو ضرورت محسوس کړو. چنانچه مسټر چرچل چه په هغه وخت کښې د برطانیئ وزیراعظم وو. د خپلې جنګی کابینې یو وزیر سر سټیفورډ کرپس د صلح استاذے مقرر کړو. او د برطانوی حکومت له خوا ئې مرتب کړده تجاویز سره هندوستان ته رااولیږلو. د برطانوی حکومت له خوا د دے تجویزونو په باب کښې دا شرط وو چه دا تجویزونه به یا منلے شی او یا به رد کولے شی. سر سټیفورډ کرپس د هندوستانی مشرانو سره ملاقات اوکړو. ولے دا تجویز کانګرس او مسلم لیګ دواړو دلو نامنظور کړل. ددے تجویزونو خلاصه دا وه:-

(۱) د جنګ نه پس به هندوستان ته مکمله ازادی ورکولے شی.

(۲) د قامونو او مذهبونو د حفاظت ذمه واری به فی الحال د حکومت برطانیه په غاړه وی.

(۳) د جنګ نه پس به د آئین ساز مجالسو انتخاب کیږی. او دستور سازه اسمبلی به قائمیږی.

(۴) دستور به وفاقی وی. یعنی صوبے به په هند یونین کښې شاملے وی.

(۵) د دستور سازے ادارے منظور شوے آئین به د هندوستان نوے آئین ګڼلے شی.

(۶) هرے صوبے یا ریاست ته به دا حق حاصل وی چه په یونین کښې دلس کاله شامل کیدو نه پس که د یونین نه جدا کیدل غواړی نو جدا کیدے به شی. دغه شان بیلے شوے صوبے یا ریاستونه به په خپل مینځ کښې بیل وفاق یا یونین جوړولے شی.

(۷) د جنګ په دوران کښې به انډیا ایکټ (۱۹۳۵ء) نافذ وی.

(۸) د دفاع محکمه به په هرحال د وائسرائے ماتحت وی.

(۹) دا تجاویز به یا ټول منظورولے شی او یا به ردکولے شی. یعنې د ترمیم او تنسیخ اجازت به پکښې نۀ وی.

لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی په اګست ۱۹۴۲ء کښې کانګرس د "کوئټ انډیا" تحریک

شروع کړے وو. او د دے په وجه حکومت هند کانګرسی ممبران نیولی وو. د دے نه شپږ میاشتے پس ګاندهي جي وائسرائے ته دا اولیکل چه هغه دِ غیر مشروط پرے بښودلے شي. ګنی هغه به د یوویشت ورځو د پاره احتجاجي روژه اونیسی. ولے دا ځل حکومت د ګاندهي جي په دے دېکے څه پروا او نهٔ لرله. او پرے ئے نښبو. د صوبه سرحد په نیولی شوو کانګرسی ممبرانو کښې لس ممبران د صوبه سرحد د آئین ساز مجلس ارکان وو. په دے ورځو کښې په صوبه سرحد کښې د مسلم لیګ د تحریک د نهٔ مقبول کیدو یو وجه دا هم وه چه په دے صوبه کښې د مسلمانانو دومره غالب اکثریت وو چه د دوئ په خیال کښې د هندوستان د هندو اکثریت تصور بے معنیٰ معلومیدو. بل طرف ته د تعلیم د نیشتوالی په وجه د صوبه سرحد عام اولس د مغربي جمهوریت د دور رسو نتا ئجو باریکیو ته نهٔ شو رسیدلے. د دوئ په مخکښې خو د خپلے صوبے حالات وو. دوئ د .. سل پاپړ او یو لوړ د نظریئے قائل وو. ولے دغه ورځو کښې چه لیګ د عوامو سره خپله رابطه قائمه کړه. او هغه پښتانهٔ مشران چه د کانګرس د پالیسئ نه ناراض شوی وو. په مسلم لیګ کښې شامل شول. نو د مسلم لیګ تحریک په تیزئ سره په عوامو کښې مقبول شو. د لیګ د نهٔ مقبول کیدو یوه وجه دا هم وه چه تر دے وخته هندوانو د چاګمان نهٔ کیدو چه انګریزان به دومره زر د اقتدار نه لاس په سرکیدو ته تیار شي. ولے هرکله چه د سیاسی حالاتو د رفتار نه دا اندازه ورو ورو څرګنده شوه. نو د سرحد د مسلمانانو سره هم دا فکر پیدا شو چه په متحده هندوستان کښې به موتول عمر د هندو د لاندے شپه وی. دغه وجه وه چه دوئ هم په خپله رویه غور اوکړو. او د مسلم لیګ د مطالباتو سره ئے همدردی پیدا شوه.

په هر حال په دے ورځو کښې مسلم لیګ په دے حیثیت کښې وو. چه د سیاست په میدان کښې د کانګرس مخه اووهي. چنانچه د لسو کانګرسی ممبرانو د نیولو نه پس د سرحد ګورنر د مسلم لیګی ممبرانو سره په دے صوبه کښې د مسلم لیګ د وزارت د تشکیل کولو په حقله خبرے اترے شروع کړے. دا خبرے کامیابے شوے. او په صوبه کښې په اول وار د مسلم لیګ وزارت قائم شو. په دے وزارت کښې د سردار عبدالرّب نشترؔ وزیر خزانه، خان شین جان وزیر تعلیم او سردار اجیت سنګه وزیر صحت مقرر شوی وو. دا وزارت د ۱۹۴۵ء پورے قائم وو. او چه په دغه کال کانګرسی ممبران بیا ازاد شول نو ګورنر ډاکټر خان صاحب مرحوم ته د وزارت د تشکیلولو دعوت ورکړو. او په صوبه سرحد کښې دوباره کانګرسی وزارت قائم شو.

په ۱۹۴۵ء کښې د جنګ رفتار د اتحادیانو په حق کښې وو- جرمنی او اټلی جنګ بائیلودے او میدان نه وتلی وو- صرف یو جاپان په ایشیا کښې جنګیدلو. په دغه ورځو کښې د هند وائسرائے - لارډ ویول » په خپل جنګی کونسل کښې د هندوستانیانو د سرګرم تعاون حاصلولو په غرض هندوستانیانو ته د زیاتے نمائندګئ ورکولو پیشکش اوکړو- او په دے غرض ئے د کانګرس، مسلم لیګ او د هند د نورو سیاسی ډلو مشران شملے ته اوبلل- په دے جرګه کښې د کانګرس د لوری نه ګاندهی جی، جواهرلال نهرو، خان عبدالغفار خان، مولانا ابو الکلام آزاد (چه په دغه ورځو کښې د کانګرس صدر وو) راج ګوپال اچاریه او ډاکټر راجندر پرشاد شامل شول- د مسلم لیګ له خوا قائداعظم، لیاقت علی خان، سردار عبدالرب نشتر، حسین شهید سهروردی، حسین امام او سر غلام حسین هدایت الله نمائندګان وو- د دوئ نه علاوه د سیکانو او اچوتو هندوانو نه هم یو یو مشر بللے شوے وو. په دے کانفرنس کښې د وائسرائے د لوری نه په جنګی کونسل کښې د اعلیٰ ذات د هندوانو او مسلمانانو د پاره پنځه پنځه نشستونه مقرر شوی وو- کانګرس دا مطالبه اوکړه چه د مسلمانانو په برخه کښې دِ یو کانګرسی مسلمان واخستے شی. د غه شان د پنجاب سر خضر حیات خان هم د لیګ د مخالفت په وجه د خپلے ډلے د یو مسلمان ممبر د اخستلو مطالبه اوکړه- ولے قائد اعظم دے مطالبے منلو ته تیار نهٔ شو- ځکه چه په دے صورت کښې د مسلم لیګ له خوا د مسلمانانو د واحدے نمائندګئ دعوی غلطه ثابتیدله- د دے نتیجه دا شوه چه د شملے کانفرنس کامیاب نهٔ شو- د دے نه پس مسلم لیګ د عامو انتخاباتو مطالبه اوکړه- په دے غرض چه دا خبره ثابته شی چه د مسلمانانو واحد نمائنده جماعت مسلم لیګ دے، او که کانګرس- دا مطالبه او منلے شوه- په ملک کښې د عامو انتخاباتو اعلان اوشو- او د عارضی حکومت تشکیل د عامو انتخاباتو تر نتیجے پورے ملتوی شو-

د دے انتخاباتو په سلسله کښې قائد اعظم په ۲۰ نومبر ۱۹۴۵ء پیښور ته راغے- په دے موقعه چه د سرحد خلقو په کومه شانداره طریقه د قائد اعظم استقبال کړے وو- د هغے مثال د پیښور په تاریخ کښې په ګرانه اوموندلے شی- دا ټول هغه د عوامو د یو محبوب رهنما او مشر په ډول راغلے وو- په ۲۱ نومبر جلسه اوشوه- چه بے مبالغ به پکښے د خلقو شمیر د یو لک نه زیات وو- قائد اعظم په خپل تقریر کښې دا اووئیل :-

"موږ دا مطالبه کړی ده چه انتخابات دِ اوشی- غرض مو دا دے چه دا خبره معلومه شی چه مسلمانان پاکستان غواړی او که اکهنډ هندوستان- دا خبره یاده لرئ چه تیول

مسلمانان اسمبلۍ ته نهٔ شي تلے. د صوبه سرحد په آئین ساز مجلس کښې د مسلمانانو اَتهٔ دیرش نشستونه دي. دا ظاهره ده چه دمسلم لیګ پارلیمانی بورډ ټولو امیدوارانو ته ټکټ نهٔ شي ورکولے. که چرے تاسو د ایمانداریٔ او بے غرضیٔ نه کار واخلئ او دمسلمان قوم خدمت ته ملا اوتړیٔ نو ستاسو د پاره بے د دے نه بله هیڅ لار نشته چه تاسو د لیګ امیدوار کامیاب کړیٔ. په مجموعی ډول د صوبه سرحد پښتانهٔ د هند د نورو صوبو دخلقو په نسبت زیات منظم دي. او د دے وجه څرګنده ده. یعنی د دوئ د غلامئ موده نسبتًا کمه ده. زهٔ د تاسو نه داخواست کوم. او د الله پاک نه دعاغواړم چه نفخه د زمادا خواست ستاسو په زړونو کښې کښینوی چه تاسو د خپل قام په باب کښې خپل فرائض او پیژنئ. او د نفع حق ادا کړیٔ. زهٔ د دے پلیټ فارم نه دا اعلان کوم چه د هندوانو په مقابله کښې مسلمانان زرځله زیات د ازادیٔ غوښتونکی او خواهشمند دي. مسلمانان پاکستان غواړي. او د دے مطلب دا دے چه د مسلم اکثریت په صوبو کښې د دَ مسلمانانو حکومت وی. او اقلیتونو ته دِ مؤثر تحفظات ورکړے شي. او د دے په حقله زمونږ دین، زمونږ تاریخ او زمونږ روایات د ټولو نه مضبوط او مؤثر ضمانت دے. چه د غیرمسلمو سیاسی، دینی او تمدنی حقوقو په خاطرخوا حفاظت کیدے شي۔

دا انتخابات په ډیر جوش وخروش کښې اوشول. د مسلم لیګ په مقابله کښې جمعیت العلماء، کانګرس، مهاسبهائ هندوان، او سیکان ټول یو شوی وو. بیا هم په صوبه سرحد کښې د انتخاباتو نتیجه د مسلم لیګ د پاره حوصله افزا وه. د پنځوسو نشستونو په ایوان کښې د پارټیانو پوزیشن دا وو. کانګرس (۳۰) نشستونه چه لس پکښې غیر مسلم وو. مسلم لیګ او ولس او مسلم نیشنلسټ دوه، اکالی سیک یو. د صوبه سرحد نه علاوه د هند په نورو صوبو کښې مسلم لیګ په ډیر اکثریت کامیاب شو. او په مرکزی اسمبلۍ کښې ئے شاندارہ کامیابي حاصله کړه. په مرکزی اسمبلۍ کښې د مسلمانانو دیرش نشستونه وو. او دیرش واړه مسلم لیګ اوګټل. دے انتخاباتو په واضح ډول دا خبره څرګنده کړه چه په کل هند سیاست کښې مسلم لیګ د مسلمانانو واحد جماعت دے. دا ځل هم په صوبه سرحد کښې د کانګرس وزارت قائم وو. چه ډاکټر خان صاحب په کښې وزیر اعلیٰ وو. او د ډاکټر خان صاحب نه علاوه نور وزیران قاضي عطاء الله خان مرحوم، یحیٰ جان خان او رائے بهادر مهر چند کهنه وو.

په فروریٔ سنه ۱۹۴۶ء کښې برطانوی حکومت د هند د سیاسی کشالے د حل کولو او

یو نمائنده حکومت ته د اختیاراتو سپارلو په غرض درې ممبرانو مشتمل یو وفد رااولیږلو دا وفد د"وزارتي مشن" په نامه مشهور دے. دے وفد خپل تجاویز د کانګرس اومسلم لیګ مشرانو ته پیش کړل. د دے تجویزونو خلاصه دا وه:. چه د هند یونین دپاره به یو آئین ساز اسمبلی جوړولے شي - دا اسمبلی به د صوبائي اسمبلیانو نه تشکیل کیږي. د هر لسو خلقو په سر به یو ممبر وی - د یونین سره به د دفاع ، مواصلات اوخارجه معاملات وی. د دستور سازے اسمبلۍ د اول اجلاس نه پس به د صوبو نمائندګان په درے بیلو بیلو ګروپونو کښے یو ځائے کیږی. په ګروپ الف کښے به د مدراس ، بمبئ ، یوپي ، سی۔پي ، بهار او اړیسه صوبے شامل وی. په دے ګروپ کښے به د مسلم ممبرانو شمیر (٢٠) وی . په ګروپ (ب) کښے به د پنجاب ، صوبه سرحد، سنده اوبلوچستان صوبے شامل وے. او په دے کښے به د مسلم ممبرانو شمیر (٢٣) وی . په (ج) ګروپ کښے به د بنګال ، او اسام صوبے وی. او په دے کښے به د مسلم ممبرانو شمیر (٣٦) وی. د هر ګروپ صوبے ته به دا اجازت وی چه لس کاله پس د ائین په دفعاتو نظر اوکړی. د دے سکیم له مخه د هر ګروپ په صوبو کښے خود مختار حکومت قائمیدلو.

د وزارتي مشن دا منصوبه مسلم لیګ د هند د سیاسی مسئلے د یو پرامن حل د خواهش په بنا اومنله. ځکه چه په دے کښے د شپږو مسلم اکثریت صوبو د لازمی ګروه بندی په صورت کښے د پاکستان تصور د بنیاد په ډول موجود وو. ولے کانګرس د دے هغه حصه منظوره کړه کومه چه د آئین سازے اسمبلۍ سره متعلق وه. ولے وائسرائے د دوی دا خبره او نه منله - دغه وخت کښے برطانوی حکومت هندوستانیانو ته د اختیاراتو ورکولو په باب کښے لیواله وو. ولے هندوستانی مشران په یو خبره نه متفق کیدل. او په دے وجه په بیرونی دنیا کښے د دوی وقار ډیر کم شوے وو. کانګرسی مشرانو د وزارتي مشن د ځنے تجویزونو مطلب د خپل غرض مطابق کولو. او په دے وجه خبره اوږده شوه.

د دے نه پس وائسرائے هند د لیګ او کانګرس مشرانو ته په عبوری حکومت کښے د شمولیت دعوت ورکړو. لیګ دا دعوت منظور کړو. لیکن کانګرس او نه منلو. لیکن وائسرائے دا دعوت واپس واخستو. په دے خبره د مسلم لیګ مشرانو په خپله پالیسۍ د دوباره غور کولو فیصله اوکړه. په دے غرض په بمبئ کښے د لیګ یو جلسه اوشوه. د لیګ دا اجلاس په خپل نوعیت کښے د لیګ په تاریخ کښے ډیر اهم وو. په دے اجلاس کښے د حکومت سره د عدم تعاون فیصله اوشوه. او په دستور سازے اسمبلۍ او په عبوری

حکومت کښې د عدم شمولیت اعلان اوکړے شو. په دے جلسه کښې لیګ د خپلو ممبرانو نه د سرکاری خطابونو واپس کولو مطالبه هم اوکړه. چنانچه د لیګ ټولو خطاب یافته ممبرانو خپل خپل خطابونه حکومت ته واپس کړل. د لیګ د دے کاروایئ په جواب کښې حکومت هند کانګرس ته په عبوری حکومت کښې د شمولیت دعوت دوباره ورکړه. او کانګرس دا دعوت قبول کړو. د حکومت هند او کانګرس دا اقدام د لیګ برخلاف یو شرمناک سازش اوګڼلے شو.

د دے په جواب کښې مسلم لیګ د " راست اقدام " د دستورے فیصله اوکړه. غرض ئے دا وو چه حکومت ته خپل خفګان ظاهرکړی په ۱۶ اګست ۱۹۴۶ء په ملک کښې د راست اقدام دستوره اوشوه. ولے په دے ورځ په کلکته کښې بے طرح داسے خونړے فساد اوشو. چه د شقاوت او سنګدلئ په تاریخ کښې به ئے مثال مونددل ګران وی. دا فساد داسے ناڅاپه شروع شوے وو چه حکومت په وخت باندے په دے قابو بیا نهٔ مونددلو. او قانون شکنه خلقو د دے نه ډیره فائده اوچته کړه. د دسمبر په اول تاریخ په بمبئ کښې هم دغه شان فساد اوشو. او قریب وه چه د فساداتو اور په ټول ملک کښې خور شی. چنانچه د لیګ او کانګرس ترمینځه د مفاهمت تحریک شروع شو. او د خبرو اترو نه پس لیګ په عبوری حکومت کښې د شمولیت فیصله اوکړه. ولے د لیګ او کانګرس ترمینځه اختلافات دومره شوی وو. چه په مرکز کښې د قومی حکومت د جوړیدلو باوجود په ملک کښې د صلح صلاحیت او امن و امان فضا پیدا نهٔ شوه. د ملک د اولس زړونه یو بل ته خیرن وو. په ټول ملک کښې فرقه وارانه جذبات پاریدلی وو. د کلکتے فساد د یو متعدی مرض په شان په ټول ملک کښې خور شو. په دے پسے سم په بهار کښې هم فساد اوشو. د بهار د فساداتو خصوصیت دا وو چه په دے کښې هغه قوم پرست مسلمانان هم چه ټول عمر ئے د کانګرس په مرسته او د خپل قام په مخالفت کښې تیر کړے وو. د هندوانو د ظلمونو نه بچ نهٔ شول. او په ډیرے بے دردئ اووژلے شول. د بهار د فساداتو په نتیجه کښې د مشرقی بنګال د نواکهالی په ضلع کښې هم فساد اوشو. په دے کښې هم ډیر بے ګناه او ګنهګار اووژلے شول. د دے ردِ عمل دوباره په بهار کښې اوشو. دا ځل دا فسادات دومره خوفناک وو چه پنډت نهرو چه په خپله دوره کښې د دے تباهی اولیدله نو دا اعلان ئے اوکړو چه که فسادیانو دا فسادونه بند نهٔ کړل نو په هغوی باندے به د هوائ جهازونو نه بمباری اوکړے شی. د بهار د فساداتو خونړئ لوبه په یو پی کښې هم اوشوه. او هلته هم په بے ګناه مسلمانانو شرمناک ظلمونه

اوشول. د دے فسادا تو په باب کښے پنډت پنت د یو پي وزیراعظم او رفیع احمد قدوائی وزیر داخله په یو مشترک بیان کښے دا اووئیل چه " د دے فسادونو زمونږ څهره د دنیا د خلقو په مخکښے د شرم نه سکته کړل "

یو طرف ته په ملک کښے دا فسادات جاری وو. په بل لوری کانګرس په ۹، ستمبر ۱۹۴۶ء د آئین ساز اسمبلۍ د اجلاس اعلان اوکړو. په دے موقع قائد اعظم د وائسرائے هند او کانګرس دواړو نه دا اسمبلۍ د التوا خواست اوکړو. و لے د دے خواست هیڅ اثر او نهٔ شو. چنانچه قائد اعظم هم په دے اسمبلۍ کښے د شرکت نهٔ کولو فیصله اوکړه.

لکه چه اووئیلے شول په دے ورځو کښے په مرکز کښے د لیګ او کانګرس مشترک وزارت قائم وو. او په صوبه سرحد کښے هم کانګرسی وزارت برسر اقتدار وو. په دغه ورځو کښے د سرحد کانګرس کمیټۍ پنډت نهرو ته چه په مرکزی وزارت کښے د خارجه امورو محکمه ورسره وه د صوبه سرحد او قبائیلی علاقو د دورے دعوت او مشوره ورکړه. او پنډت نهرو دا دعوت منظور کړو. په صوبه سرحد کښے د سرخپوشو د طاقت نه سڼهٔ خبر وو. او د کانګرس د صدارت په زمانه کښے چه هغه اول وار صوبه سرحد ته راغلے وو او د دے صوبے خلقو په کومه شاندار طریقه د هغهٔ استقبال کړے وو. د هغے نقشه د هغهٔ په سترګو کښے لا هغه شان عزیز له. د هغهٔ دا یقین وو چه د هغهٔ دا دوره به کم از کم په سرحد او قبائیلی پښتنو کښے د پاکستان مطالبه کمزوری کړی. و لے د هغهٔ دا خیال غلط وو. او س هغه وخت تیر شوے وو.

په د ے ورځو کښے د پاکستان مطالبه د سرحد خلقو او قبائیلی پښتنو تر ډیره حده منلی وه. او دوئ ته دا معلومه شوی وه چه د متحد هندوستان ازادی د هندو ازادی او د مسلمان غلامی ده. او مسلمان بالخصوص پښتانهٔ د هندو حکومت په خپل ځان باندے منلو ته تیار نهٔ وو. دا داسے ورځ وے چه د کانګرس تحریک ډیر مخلص او سرګرم پښتانهٔ مشران چه د هغوی په قربانیو کانګرس د عروج انتها ته رسیدلے وو. د کانګرس او هندوانو د ناړاے رویئے له کبله په مسلم لیګ کښے شامل شوی وو. او د پاکستان تحریک ئے خپل کړے وو. په داسے حالاتو کښے د پښتنو سره چه پنډت نهرو کوم توقعات وابسته کړی. هغه محض په خوش فهمئ مبنی وو.

دا خبره د شک نه بهرده چه په صوبه سرحد کښے بالخصوص په پښتنو کښے د کانګرس

تحریک څه موده اګاهو ډیر مقبول وو۔ خدائ خدمتګارانو او د دغوی مشرانو د وطن د ازادئ په لړکښې بے مثاله قربانئ ورکړے وے۔ او د کانګرس په شهرت او عروج کښے د دے خلقو د قربانیګو لویه برخه وه۔ ولے په صوبه سرحد کښے چه د کانګرس برخلاف کوم ماحول پیدا شوے وو۔ هغه هم کانګرس په خپله پیدا کړے وو۔ حالات پیدا کول دیو لیډر د وس نه بهروی۔ و لے چه موزون حالات پیدا شي نو د هغے نه استفاده کول دیو قابل لیډر کاروی۔ دا خبره یقیني ده چه د پاکستان تحریک قائد اعظم د جادو په زور په اولس کښے نهٔ وو مقبول کړے . لیکن هرکله چه د دے د پاره موزون حالات پیدا شو نو د هغ نه ئے پوره پوره فائده واخستله ۔ دا حالات د کانګرس پیدا کرده وو۔لیکن د خلقو د تیارولو کار قائد اعظم سرته اورسولو۔

په داسے نازکو حالاتو کښے چه د هندوانو او مسلمانانو تعلقاتو ډیر تریخ والے اختیار کړے وو۔ صوبه سرحد ته د پنډت نهرو راتلل د یو ډیر جرأت کار وو۔ لیکن دا جرأت هغهٔ په دے خیال کړے وو چه د دے په وجه به د کانګرسیانو زړونه غټ شی۔ او د پاکستان مطالبه به کمزوری شي۔ څکه چه هم په دغه ورځو کښے د پښتنو نه د پاکستان او هندوستان په مقبله راغ ٔ غوښتونکی وه۔ به هر حال پنډت نهرو په ۱۶راکتوبر ۱۹۴۶ء پیښور ته راغ۔ په دے موقع د پیښور هوائ اډے ته د مسلمانانو یو بے پناه هجوم راغونډ شوے وو۔ د درے زرو نه زیات د مسلم لیګ رضاکار د خلقو په ترتیب و تنظیم کښے لګیا وو۔ چه د پنډت نهرو د جهاز په راتلو کښے پنځه منټه وخت پاتے شو۔ نو د زرو نه زیاتے تورے غبارے چه په هغ باندے په سپینو حروفو "بیرته څه" لیکلی شوی وو په هوا کښے والوزولے شوے داسے نظاره د پیښور په تاریخ کښے چرته د دے نه وړاندے نهٔ وه لیدلی شوی۔ په داسے حالاتو کښے د پنډت نهرو جهاز راااورسید۔ وزارت د پنډت جي د حفاظت پوره انتظامات کړی وو۔ولے خلق دومره بے حسابه وو چه په قابو کښے نهٔ شو راتلے۔ د هوائ اډے نه پنډت نهرو په یو نا معلومه لار د ګورنر بنګلے ته اورسولے شو۔

بله ورځ د خیبر د دورے پروګرام وو۔ حکومت د خپل طرف نه ټول حفاظتی انتظامات کړی وو۔ ولے د اسلامیه کالج سره د پنډت نهرو بر خلاف د تورو جنډو مظاهره اوشوه۔ بیا په جمرود کښے قبائیلی پښتنو هم مظاهره اوکړه۔ او په لنډی خانه کښے خو دومره زوردار مظاهره اوشوه چه د پنډت نهرو نه ئے هر څه خطا کړل۔ په ټوله لار په هر برج او هر مکان باندے د مسلم لیګ جنډے لګیدلی وے۔ او په هر ځائے کښے د پاکستان زنده باد او

قائد اعظم زنده باد چغې نعرې اوښکلې شوې - په ټوله قبائيلي علاقه کښې د پنډت نهرو استقبال هم په دې شان اوشو. ولې د ملاکنډ ايجنسۍ کښې د پنډت نهرو په موټر سنګباري هم او شوه؛ او حالات دومره نازک شول چه په سم سړک د هغه د موټر تلل هم ناممکن شو. د دې مظاهرو په الزام کښې د هغه وخت پولټيکل ايجنټ نواب محبوب علي خان معطل کړې شو. او د هغه برخلاف د بمبۍ هائي کورټ يو انګريز جج ‹‹ مسټر کلارک ›› په تحقيقات مقرر شو. ولې د حکومت الزامات درست ثابت نه شول. او نواب مرحوم په باعزته طريقه پرې ښودلې شو. هم دغه شان مظاهرې د وزيرستان په علاقه کښې هم اوشوې - او پنډت نهرو چه د کوم مقصد د پاره د صوبه سرحد او قبائيلي علاقو دا دوره کړې وه هغه پوره نه شو. بلکه د دې دورې سره په سرحدي خلقو کښې د پاکستان نظريه نوره هم مقبوله شوه.

په دې دوران کښې برطانوي وزيراعظم دا اعلان اوکړو چه حکومت برطانيه زر تر زره هندوستان ازادول غواړي. او د جون ۱۹۴۸ء نه پس خو په هيڅ حال په هندوستان د نور حکومت کولو اراده نه لري. او که چرې هندوانو او مسلمانانو په خپل مينځ کښې اوس هم څه فيصله اوکړه نو موږ به هندوستان دوئ ته حواله کړو. دا يو داسې اعلان وو چه د هغه مسلمانانو سترګې ځ هم او غړولې کوم چه تر دې وخته لا په دې خيال کښې وو چه انګريزان د هند حکومت په الاسانه نه پريږدي. چنانچه سر خضر حيات خان چه په پنجاب کښې د يونينسټ پارټۍ مشر وو او په پنجاب کښې د مسلم ليګ د اکثريت باوجود د هندوانو سيکانو په مرسته وزيراعظم وو. په ۲ مارچ ۱۹۴۷ء د پنجاب د وزارت عظمٰی د عهدې نه مستعفي شو. او دا ئې اووئيل چه د وزارت جوړولو حق صرف مسلم ليګ ته حاصل دې.

چه د پنجاب ګورنر د مسلم ليګ پارټۍ مشر ‹‹ نواب ممدوټ ›› ته د وزارت د تشکيل دعوت ورکړو. نو د سيکانو او هندوانو له خوا په پنجاب کښې فسادات شروع شول. دا فسادات په خپل نوعيت کښې د بهار د فسادونو نه په هيڅ صورت کښې کم نه وو. د پنجاب يو ښار هم د فساداتو د اور نه بچ پاتې نه شو. په لاهور، امرتسر، جالندهر، راولپنډۍ او مرئ کښې خونړي فسادات اوشول. د اقليت او اکثريت د دې فسادونو ټوله فضا بدله کړه. په نظرياتو کښې تبديلي پيدا شوه. په خيالاتو کښې يو انقلاب راغې. او هغه خلق چه لا تراوسه په متحده هندوستان کښې د هندوانو نه د خير په طمع وو هغوی هم نااميده شول. او د پاکستان په مرسته مجبور شول. د دې نه پس قائد اعظم د وزارتي مشن سکيم بيخي مسترد کړو.

او د پاکستان په مطالبه کلک اودریده۔

په دے ورځو کښے د مسلم لیګ تحریک په صوبه سرحد کښے هم عروج مونده لے وو۔ په مسلم لیګ کښے داسے کسان چه د کانګرس تحریک سټنے وے شامل شوی وو۔ د پنډت نهرو برخلاف چه کومے مظاهرے شوی وے د هغ قیادت د ارباب عبدالغفورخان او د مانکی د مرحوم پیرصاحب په لاس کښے وو۔ په سرحد کښے د مسلم لیګ د مقبولیت په لړکښے د مرحوم پیرصاحب خدمات د ډیرے ستاینے وړ دی۔ دا هم د دوئ د خدماتو او کوششونو نتیجه وه چه د مسلم لیګ تحریک د خواصو نه عوامو ته اورسید۔ او د دے تحریک جړے عوامو ته اورسیدے۔ د پنډت نهرو د تلو نه پس حالات په ډیرے تیزئ بدل شول۔ د صوبه سرحد د کانګرس وزارت برخلاف په اولس کښے یو عام تحریک شروع شو۔ د وزارت برخلاف به جلسے کیدلے، جلوسونه به وتل۔ په دے جلسو جلوسونو به د حکومت د لوری نه اشک آورګیسونه چلیدل۔ د مسلم لیګ ډیر رهنمایان جیلونو ته اولیږلے شول۔ د وزارت برخلاف په دے مظاهرو کښے د سړو نه علاوه ښځو به هم په لویه پیمانه حصه اخستله۔ د وزیراعظم ډاکټر خان صاحب د بنګلے د وړاندے به مظاهرے کیدلے۔ په یو جلوس باندے ګولئ هم چلیدلی وے۔ چه د هغ په نتیجه کښے لس شل تنه مړه شوی او څنے خلق ژوبل شوی وو۔ په جیلونو کښے به د سیاسی قیدیانو سره ذلت آمیز سلوک کیدلو۔ غرض په ټوله صوبه کښے د کانګرس وزارت برخلاف د غیظ و غضب او نفرت جذبات پاریدلی وو۔

دا داسے ورځ وے چه برطانوی حکومت د هندوستان د ازادولو د پاره جون ۱۹۴۸ء تاریخ مقررکړے وو۔ او د اختیاراتو د انتقال د انتظاماتو د تکمیل په غرض د برطانوی حکومت له خوا د ولاړ ویول په ځائے لارډ لوئ ماونټ بیټن د لویو اختیاراتو سره نوے واسرائے مقرر شوے وو۔ او هغه د کانګرس او لیګ د مشرانو سره د خبرو اترو نه پس د هندوستان د تقسیم فیصله کړی وه۔ ولے په صوبه سرحد کښے د کانګرس د وزارت په وجه د دے صوبے حیثیت واضح نۀ وو۔ د کانګرس دا مطالبه وه چه صوبه سرحد دِ یا په هندوستان کښے شامل شی اویا دِ د یو آزاد حیثیت ورکړے شی۔ په مرکز کښے د لیګ او کانګرس ترمینځه بحثونه جاری وو۔ او په صوبه سرحد کښے د کانګرس وزارت برخلاف د عوامو مظاهرو شدت اختیارکړے وو۔ هرکله چه مرکز ته د دے شدیدو مظاهرو اطلاعات اورسیدل نو لارډ لوئ مونټ بیټن ګورنر جنرل په خپله د حالاتو د جاج اخستلو په غرض پیښور ته دراتلو فیصله

اوکړه. چنانچه کوم وخت چه وائسرائے پیښور ته راغے دغه وخت د صوبه سرحد د کوټ کوټ نه تکونو خلق پیښور ته د مظاهرے په عرض راغلی وو. په دے خلقو کښے په زرګونو زنانه هم شاملے وے. په دے کښے هیڅ مبالغه نشته چه د پیښور په تاریخ کښے به بله داسے مظاهره چرته نهٔ وی شوی. په دے ورځو کښے د سرحد مسلم لیګ ټول مشران په جیلونو کښے بند وو. د مظاهرینو د ترجمانئ په غرض سردار عبد الرب نشتر چه په مرکز کښے د لیګ د خوا نه د مواصلاتو وزیر وو. په خصوصیت سره پیښور ته راغلے وو. وائسرائے د خپلے بیګمے سره د ګورنر سرحد سر اولف کیرو په ملګرتیا کښے د مظاهرینو د لیدو په عرض کننګهم پارک ته راغلو. په دے موقع سردار عبدالرب نشتر صاحب او سر فیروز خان نون د اولس ترجمانی اوکړه. او وائسرائے ته ئے د عوامو دا مطالبه پیش کړه چه دوئ پاکستان غواړی. د وائسرائے بیګمے د زنانهٔ مظاهرے اولیدله او د هغوی مطالبه ئے واوریدله.

د دے نه پس وائسرائے هند د صوبه سرحد کانګرسی وزیران او د مسلم لیګ دے مشران دهلی ته د جرګے د پاره اوبلل. دغه وخت کښے د سرحد مسلم لیګ ټول مشران په جیلونو کښے بند وو. دغه مشران د مختلفو جیلونو نه د پیښور جیل ته را وستلے شول. او هلته د خان ثمین خان مرحوم په صدارت کښے د لیګی مشرانو جرګه اوشوه. او د وائسرائے سره د خبرو اترو د پاره یو وفد تشکیل شو. چه مشری ئے د مانکی پیر صاحب مرحوم ته اوسپارلے شوه. د سرحد کانګرسی او لیګی مشرانو په دهلی کښے د وائسرائے سره ملاقاتونه اوکړل. او د دے ملاقاتونو په نتیجه کښے صوبه سرحد کښے د رائے شمارئ فیصله اوشوه. دغه شان فیصله د اسام د یوے علاقے سلهټ په باب کښے هم اوشوه.

د دے نه پس په ۳ جون ۱۹۴۷ء وائسرائے هند د هندوستان د تقسیم اعلان اوکړو. په دے موقع قائد اعظم، پنډت نهرو او سردار بلدیو سنګهه د هندوستان د خلقو په نوم د آل انډیا ریډیو نه خپل خپل پیغامات نشر کړل. قائد اعظم په خپل پیغام کښے دا اووے:

«زهٔ دا خبره څرګندول غواړم چه وائسرائے هند په دے لړکښے د هندوستان د مختلفو قومونو سره په ډیرے بهادرئ جنګیدلے دے. او د هغهٔ د دے کوششونو چه کوم اثر زما په خیالاتو شوے دے هغه دا دے چه هغهٔ هر یو کار په ډیرے منصفانه او دغیر

جانبدارئ په طریقه سرته رسولے دے۔ اوس ددے خبرے ذمه واری په موږ راځئ چه د واشسرائے په کارکنبے لږ شان اسانی پیدا کړو۔ او ترڅو چه زموږ په وس کښے وی۔ هندوستانیانو ته د اقتدار سپارلو په لړکښے چه د کوم مقصد ذمه واری اوچته کړی ده۔ په هغ کښے پوره پوره مدد ورکړو۔ څکه چه په پوره امن و سکون سره دااقتدار هندوستانیانو ته اوسپارلے شی۔"

"ددے اعلان دیوولسم پیراګراف نه معلومیږی چه د صوبه سرحد اولس ته به دا حق ورکولے شی۔ چه هغوی د پاکستان یا د هندوستان د دستور سازه اسمبلئ په خپله رائے څرګنده کړی۔ دا رائے معلومول به د ګورنر جنرل او د صوبے د حکومت په مشوره کیږی۔ په دے موقع زهٔ د صوبه سرحد مسلم لیګ ته دا خواست کوم چه هغه د په صوبه سرحد کښے د خپل سول نافرمانئ پرامن تحریک چه د هغ په شروع کولو دوئ مجبور کړے شوی وو ختم کړی۔ زهٔ ټولو مسلم لیګی لیډرانو او د سرحد مسلمانانو ته دا وایم چه هغوی دِ په ډیر همت او امید سره دا رائے ورکړی۔ زما دا پوره یقین دے چه د سرحد مسلمانان به په متفقه طور د پاکستان په دستورسازه اسمبلئ کښے د شرکت فیصله اوکړی۔"

۔ زهٔ د سرحدی مسلمانانو د هغه تکلیفونو او قربانیو شکریه په الفاظو کښے نهٔ شم ادا کولے۔ په تیره تیره د زنانه اولس چه د شهری ازادئ د بحال کولو د پاره کومے قربانئ کړی دی زهٔ هغو ته د قدر په نظر ګورم۔ او په چا د الزام لګولو نه بغیر د هغه ټولو خلقو سره خپله همدردی ظاهروم چا چه دا تکلیفونه تیر کړی دی۔ او د هغه کسانو سره چه څوک په دے کښے مړهٔ شوی دی۔ او هغه څوک چه مالونه جائدادونه ئے تباه شوی دی۔ زهٔ دا امید کوم چه سرحد به د رائے شمارئ په وخت کښے پرامن وی۔ د صوبه سرحد هر سړی ته دا احساس پکار دے چه د سرحد د عوامو فیصله به کامله ازادئ، انصاف او په رښتونی ډول اوشی۔ زهٔ یوځل بیا د ټولو مسلمانانو نه دا خواست کوم چه هغوی دِ د امن و قانون حفاظت اوکړی۔ (پاکستان زنده باد)۔"

په کال سن۱۹۴۶-۴۷ء کښے د صوبه سرحد ګورنر سر اولف کیرو وو۔ چه په صوبه سرحد کښے د رائے شمارئ فیصله اوشوه نو دے نیناعلی د دوو میاشتو د چھوټئ د پاره درخواست اوکړو۔ او وجه ئے دا ښکاره کړه چه چونکه په صوبه سرحد کښے ځنے خلق (کانګرسی ډله) هغه (ګورنر) د مسلم لیګ جنبه دار ګڼی۔ په دے بنا به د رائے شمارئ په

وخت کښې دیو بل گورنر موجودگی بهتره وی - ددې درخواست په جواب کښې واشرائے
هغهٔ ته دا اووئے چه اگر چه زهٔ دې قسم الزاماتو ته څه اهمیت نهٔ ورکوم ولې بیا
هم ستاد خواهش په لار کښې بندیز نهٔ اچوم - چنانچه سراولف کیرو په چوټئ لاړ۔
او د هغهٔ په ځائے یو فوځئ افسر، جنرل سرراب لوکهارټ، گورنر او ټاکلے شو۔

اگر چه په صوبه سرحد کښې د رائے شماری فیصله دآل انډیا کانگرس مجلس عامله هم اودې توثیق ئے کړے وو۔ لیکن د دې باوجود د سرحد کانگرس کمیټئ په دې فیصله ناراضه وه۔ دغه وجه وه چه په صوبه سرحد کښې په دغه ورځو کښې د سیاسی ډلو تر مینځه اختلافات زیات وو۔ او مخالفانه جذبات پاریدلی وو۔ د رائے شماری د پاره د پرامن فضا ضرورت وو۔ حقیقت دادې چه د رائے شماری دا معرکه یو عظیمه معرکه وه۔ ددې فیصلې سره د هندی مسلمانانو سیاسی مستقبل وابسته وو۔ دغه وجه وه چه قائد اعظم مرحوم ددې د اهمیت نه بے پرواه نهٔ وو۔ په دې غرض قائد اعظم د ،،لارډ لوئ مونټ بیټن ،، واشرائے هند نه دا مطالبه اوکړه ۔ چه د رائے شمارئ توله عمله او هر قسم معاملات دِ براهِ راست دگورنر ماتحت وی۔ او د صوبائی وزارت دِ د هغې سره څه تعلق نهٔ وی۔ واشرائے دا مطالبه اومنله ۔چنانچه صوبائی گورنر په صوبه کښې د قیام امن او په پرامن ماحول کښې د رائے شمارئ کولو په غرض د څنې ضروری اقداماتو اعلان اوکړو۔ او د هندوستانی فوځ یو غیر جانبدار سینئر افسر بریگیډیئر ،، جے ۔آر۔ یوتهه ،، ئے د ریفرنډم کمشنر په حیثیت مقرر کړو۔ او پولنگ سټیشنونو ته نزدې د آتشین وسلے وړلو ممانعت ئے هم اوکړو۔

د ریفرنډم د اهمیت پیش نظر قائد اعظم یو ریفرنډم کمیټی هم قائمه کړی وه۔ د دې کمیټئ صدر مسټر اسماعیل ابراهیم چندریگر ،، وو چه په دغه ورځو کښې د مرکز په عبوری حکومت کښې وزیر تجارت وو۔ په دې کمیټئ کښې نور ممبران دا وو :۔ دآل انډیا مسلم لیگ د نیشنل گارډ سالار اعلیٰ نواب صدیق علی خان، په مرکز کښې د مسلم لیگ وزیر صحت راجه غضنفر علی خان ، سید واجد علی شاه او خان عبدالقیوم خان چه په سرحد کښې د مسلم لیگ ډلے مشر وو۔ د ۳ر جون د اعلان نه پس په سرحد کښې مسلم لیگ د سول نافرمانئ تحریک بند کړے وو۔ دا سول نافرمانی (۱۰۵) ورځ جاری وه۔ د رائے شمارئ د پاره د ۶ ر نه د ۱۷ر جولائی پورې نیټه مقرر شوی وه۔ د صوبے په گوټ گوټ کښې د مسلم لیگ له خوا به جلسے کیدلے۔

قائد اعظم مرحوم د برصغیر د ټولو مسلم لیګی مشرانو، کارکنانو، عالمانو، اولویولویو پیرانو تر دے چه د طالب علمانو نه هم چه په دغه ورځو کښے دَ موسم ګرما دچهټیانو په وجه اوزګار،وو . په صوبه سرحد کښے د رائے شمارئ په لړکښے د کارکولو اپیل کړے وو. او د دے اپیل زیر اثر دا خلق د صوبے په ګوټ ګوټ کښے خوارهٔ شوی وو۔

لکه چه وړیلے شوی دی د رائے شمارئ په وخت کښے د خلقو جذباتو تریځوالے اختیارکړے وو. او دا ځبره د صوبائی ګورنر او ریفرنډم کمشنر نه هم پټه نهٔ وه. چنانچه حعوی د رائے شمارئ په دوران کښے د قیام امن وامان په عرض د باقاعده پولیس او محفوظ پولیس نه علاوه انهٔ ویشت زره فوځیان هم د دے عرض د پاره مقرر کړی وو. په ۶ ر جولائی سحر وختی چه په دغه ورځ د رائے شمارئ آغاز کیدونکے وو. د پیښور په اهمو سړکونو او لویو لویو بازارونو کښے ټینکونو او ارمرډ کارونو ګشت او کړو. او د هوائی جهازونو نه اشتهارونه اوغورزولے شول. چه په ځغ کښے خلقو ته د پرامن اوسیدو خواہست شوے وو۔

د رائے شماری کار د ۶ر نه تر ۱۷ر جولائی پورے روان وو. چه د ریفرنډم د نتیجے اعلان اوشو نو دا معلومه شوه چه د صوبه سرحد د مجموعی رائے دهندګانو یو نیځوړهں فیصد خلقو د پاکستان په حق کښے خپله رائے ورکړی وه. په دے رائے شمارئ کښے چه د پاکستان په حقله څومره ووټونه اچولے شوی وو . د حصے شمیر (۲،۸۹،۲۴۴) وو. او د بهارت په حق کښے ووټونه (۲۸۷۴) وو. په صوبه سرحد کښے چه خالص د مسلمانانو څومره ووټونه وو د هغ (۶۶) فیصد د پاکستان په حق کښے استعمال شوی وو۔

د پاکستان په دستور سازه اسمبلئ کښے د شمولیت فیصله د ټولو نه اول د سنده اسمبلئ اوکړه. په سنده پسے بنګال هم اعلان اوکړو. په بنګال پسے د پنجاب اسمبلئ هم دا فیصله اوکړه. د بلوچستان شاهی جرګے هم په پاکستان کښے د شمولیت اعلان اوکړو. په ۱۳ر جولائی د سلهټ ضلع هم د رائے شمارئ په نتیجه کښے په پاکستان کښے شامله شوه. او د صوبه سرحد د رائے شمارئ په تاریخی فیصله کښے د صوبه سرحد خلقو هم په پاکستان کښے د خپل شمولیت اعلان اوکړو. چنانچه په ۱۴ر اګست ۱۹۴۷ء د شپے یو ملټ د پاسه دولس بجے د پاکستان د قیام اعلان اوشو. کراچۍ

د پاکستان دارالحکومت مقرر شو۔ دغه شان د دنیا په نقشه کښې پاکستان د یو نوی ملک په حیثیت څرګند شو۔ ( پائنده باد پاکستان )

د صوبه سرحد د قبائلي پښتنو په ځپلو ځپلو قبائلي جرګو کښې او سرحدي ریاستونو (سوات، دیر، چترال، امب) د ځپلو ځپلو نوابانو په ذریعه په پاکستان کښې دشمولیت اعلانونه اوکړل۔ او د نومبر ۱۹۴۷ء پورې د ډیورنډ پولې پورې آباد ټول قبائیلي پښتانۀ په پاکستان کښې شامل شول۔ دا قبائلي پښتنو په تاریخ کښې دا ورومبې مثال وو چه دې خلقو د یو حکومت سره د څه شرط او پابندۍ نه بغیر د خپلې وفادارۍ اعلان اوکړو۔ د دې په بدل کښې حکومت د قبائيلي علاقو نه خپل فوځونه بیرته راواغوښتل۔ په دې موقع قائد اعظم د قبائیلو په نوم په خپل پیغام کښې داویلي وو۔

۔ د قیام پاکستان په لړکښې چه تاسو ( قبائيلي خلقو ) کوم خدمتونه کړی دی۔ زۀ د هغې نه ښۀ خبر یم۔ او د هغې شکریه ادا کوم۔ د پاکستان سره د وفادارۍ او مرستې کوم لوظونه چه تاسو کړی دی د هغې په رڼا کښې موږ ټول فوځونه ستاسو د علاقې نه بیرته راواغوښتل۔ او دا ستاسو په وعدو او لوظونو د اعتماد کولو یو لوئې ثبوت دې۔"

# د

# آزادۍ نه پس

## نوے ژوند

اوس موږ نه بلوچیان یو ، نه پښتانۀ ، نه پنجابیان سندهیان او یا بنګالیان ـ بلکه موږ ټول پاکستانیان یو۔او د دے نه سیوا نور هیڅ نه ـ

پکار ده چه خپل ځان ته پاکستانی وئیل ځموږ د پاره ویاړ وی ـ ځموږ دم و قدم دواړه دِ د یوسوچه او خالص پاکستانی په حیثیت کښے وی ـ

د پاکستان د دشمنا[illegible]نو د سازشونو سکټ جواب هم دا دے چه موږ په ډیره کلکه اراده د خپل مملکت پاکستان په مضبوطو بنیادونو ودانولوکوششونه شروع کړو۔او د هغے نه یو داسے مثالی مملکت جوړکړو چه هغه زموږ د را[illegible]ی نسلونو دخوشحالئ او سوکالئ ضامن وی۔اودے مرام ته د رسیدو د پاره به موږ ته په یو مخه محنت او کار [illegible]ل وی ـ

قائداعظم مرحوم

# د آزادۍ نه پس

## نوے ژوند



که چه په تیرو پانړو کښے وښلی شوی دی . د پښتنو په علاقه انګریزانو په کال ۱۸۴۹ء کښے قبضه کړی وه . او د دوئ دا قبضه په ۱۴ اګست ۱۹۴۷ء کښے د پاکستان په قیام ختمه شوه . او ملک ازاد شو . د انګریزانو په دے سل کلیز دور اقتدار کښے هغه علاقه چه په انګریزی دور حکومت کښے به ورله شمال مغربي سرحدی صوبه وئیلے شوه . تر ډیرے مودے د سیاسی حقونو او مراعاتو نه محرومه وه . اګر چه دا درسته ده چه په دے دور کښے د پښتنو په دے علاقه کښے څه قدرے سړکونه جوړ شوی وو . او د هندوستان د قبضے او حفاظت په غرض اهم مقامات د ریل په ذریعه هم د یو بل سره یو ځائے شوی وو . د اولسی خلقو ته د ډاک و تار سهولتونه هم څه قدرے حاصل وو . او د زراعتی ترقۍ په لړ کښے څه قدرے د نهرونو په لور هم توجه شوی وه . ولے تر څومره چه د اولس د بنیادی ضروریاتو تعلق وو . په دے لړ کښے انګریزانو د خپل اقتدار په وخت کښے د ستائینے وړ څه کارنامے نه دی کړی .

د پښتون قام دوه بنیادی ضرورتونه وو . د اولس تعلیم او د دے علاقې اقتصادی ترقی او بهبودی . ولے د دے دواړو بنیادی ضرورتونو نه انګریزی حکومت بے توجهی اختیار کړې وه . د پښتنو په علاقه چه په اول وار د انګریزانو حکومت قائم شو نو دغه وخت څنے داسے انګریزی حاکمان وو . چه هغوی د عیسائیت د تبلیغ و اشاعت سرګرم مرستیال وو . په دے غرض دے حاکمانو د پښتنو په علاقه کښے هم د عیسائی مشنونو قائمولو اراده اوکړه . د دوئ دا خیال وو چه که د پښتنو په علاقه کښے د عیسائی مشنریانو له خوا سکولونه او هسپتالونه جاری کړے شی . نو په دے ذریعو به په پښتنو کښے

عیسائیت متعارف شي - او ورو ورو به په دوئ کښې داسې خلق پیدا شي چه ځنوی به ذهناً د یو عیسائي حکومت د برکاتو قائل وی - او په اولس کښې به د داسې خلقو پیدا کیدل د برطانوی استعمار د پاره مفید وی -

په دے غرض په سنه ۱۸۵۳ء کښې په اول ځل په پیښور کښې د عیسائیانو د یو مشن قائمولو اراده څرګنده کړے شوه - ولے دغه وخت دا مشن په دے وجه قائم نه شو چه د هغه وخت کمشنر مسټر میکسن د دے مشن د قیام مخالفت اوکړو - او دا ئے اووئیل چه په یو داسې ښار کښې چه د هغې غالبه ابادی په مسلمانانو مشتمله ده - او انګریزی حکومت لا نوے نوے قائم شوے دے - د دے مشن قیام به د شکوکو شبهاتو باعث اوګرځي - ولے څه لږه موده پس مسټر هربرټ ایډورډ د پیښور ډویژن کمشنر اوټاکلے شو - دا ښاغلے د عیسائیت د تبلیغ یو سرګرم مرستیال وو - ده به دا وئیل چه په هندوستانیانو کښې د عیسائیت تبلیغ د عیسائیانو د پرائیوټ ادارو یو اهم فرض دے - چنانچه د ده د کمشنرۍ په زمانه کښې په پیښور کښې د ایډورډ مشن هائي سکول په نامه د مشنریانو له خوا یو سکول قائم شو - په دے ډول د ایډورډ مشن هسپتال په نامه د یو هسپتال اجرا هم اوشوه - دا سکول او هسپتال تراوسه په دے نامو موجود دی - څه موده پس د مشنریانو له خوا د ایډورډ مشن کالج په نامه په پیښور کښې د یو کالج اجراء هم اوشوه - چه تراوسه قائم دے -

دغه شان په بنوں کښې هم د یو عیسائي مشن له خوا یو هائي سکول او یو مشن هسپتال جاری شو - د دے سکول او هسپتال په لړ کښې د یو پادری ډاکټر پینل کارنامے د ډیرے ستائینے وړ دی - دے ښاغلی ډاکټر چه د بنوں د اولس د خدمت په لړ کښې کوم کارونه کړی دی - او په خلقوئے د خپل خدمت کوم ژور اثرات پریښی دی - د هغې یاد تراوسه د دے علاقے د خلقو په زړونو کښې ژوندے دے - د پښتنو په علاقه کښې د مغربي تعلیم د اجراء په لړ کښې دا وړومبے قدم وو - چه د مشنریانو له خوا پورته شوے وو -

د بد قسمتی نه هندی مسلمانان عموماً او پښتانه خصوصاً د انګریزی نظام تعلیم نه متنفر وو - او د دے سکولونو او هسپتالونو د اجرا نه چه د مشنریانو کوم غرض وو - هغه خو تر ډیره حده شنډ اوختلو - بیا هم د دے سکولونو په جاری کیدو پښتنو ته څه نه څه فائده اورسیدله - ځکه چه د پښتنو یو خوا خوږے مشر صاحبزاده عبدالقیوم

خان مرحوم د مشن سکول پېښور تعلیم یافته وو.) د پښتنو په علاقه کښې د تعلیمي درسګاهانو او ذرائعو د کموالي او نیشتوالي او د مغربي تعلیم نه د خلقو د نفرت دا نتیجه وه چه باوجود د دې چه دا علاقه په ۱۹۰۱ء کښې د پنجاب نه بیله شوی او ځان له صوبه وه. بیا هم په پښتنو کښې د تعلیم یافته خلقو شمېر ډیر کم وو. د پښتنو د تعلیمي پسماندګۍ اندازه د دې نه لګیدې شي چه په ۱۹۱۱ء کښې په صوبه سرحد کښې په سلو کښې ایله دوه کسه په لیکو لوستلو پوهیدل. د اعلیٰ تعلیم یافته خلقو خو هډو سوال نهٔ پیدا کیدو. دا داسې حالات وو. چه د قام پوهه او خواخوږي مشران ئې په لوئې فکر کښې غورزولي وو. په دې لړ کښې ښاغلي صاحبزاده عبدالقیوم خان مرحوم د ستائینې وړ دې. د دې ښاغلي په پښتنو کښې د اعلیٰ تعلیم نیشتوالي په شدت سره محسوس کړو. او په پېښور کښې د یو اعلیٰ کالج د قائمولو په کوشش کښې لګیا وو. چنانچه هم د دهٔ په کوششونو د هغه وخت چیف کمشنر سرجارج روس کیپل د یو اسلامیه کالج په قیام اماده شو.

سرجارج روس کیپل لکه چه په تیرو پاڼو کښې وئیلي شوي دي. د پښتنو د سیاسي ترقۍ لوئې مخالف وو. ولې د دې کالج په قیام کښې د هغهٔ کوششونه د ستائینې وړ دي. د دې دواړو ښاغلیو (سرصاحبزاده او سرجارج روس کیپل) د پښتنو د صوبې ټول شته من، انسانیت دوسته خانان، نوابان او امیران د یو اعلیٰ اسلامیه کالج د قائمولو د پاره اماده کړل. چنانچه د صوبه سرحد د هرې علاقې اکثرو خانانو، نوابانو او شته منو خلقو په ډیرې فراخدلۍ د کالج امداد ته غاړه کیښوه. د کالج د پاره ئې زمکې او جائدادونه وقف کړل. او د نغدو روپو مددئې هم په ډیرارت مټ اوکړو. د کالج د امداد په لړ کښې ښاغلي خان بهادر رحیم شاه کاکاخیل مرحوم هم د یادولو وړ دې. دې ښاغلي کالج ته دامداد په ډول یو لک روپۍ نغدې او په ډیر مقدار کښې عمارتي لرګي ورکړي وو. د دهٔ په نوم په اسلامیه کالج کښې د طالب علمانو د استوګنې د پاره یو وارډ هم جوړ شوې دې. په دې ډول د پښتنو د هرې علاقې انسانیت دوسته امیرانو د کالج په قیام کښې مدد اوکړو. او د دې نتیجه دا شوه چه د حکومت او عوامو په مشترکه امداد په کال ۱۹۱۳ء کښې اسلامیه کالج او اسلامیه کالجیټ قائم شول. د دې کالج د سنګ بنیاد ایښودلو دستوره د پښتنو د علاقې مشهور مجاهد اعظم حضرت حاجي صاحب ترنګزئ مرحوم په لاس هغه ځائې شوی وه کوم ځائې چه نن ورځ په دې کالج کښې عظیم الشانه جُمات اباد دې. دا جُمات د پېښور مشهور مخیّر سیټهه رحیم بخش مرحوم د پنځوس زرو

روپو په خرڅ تعمیر کړے وو۔

د دے کالج او سکول د پاره چه کومه موقع منتخب شوی ده په حقیقت کښے هغه د کالج د بانیانو په درست مذاق او بالغ نظرئ دلالت کوی۔ دا کالج د خیبر په خوله کښے د تهتړے د دنګو لوړو غرونو په لمنه کښے په داسے موقع اباد دے چه د وسط ایشیا د لوری نه د راتلونکو اول نظر هم د دے کالج د شاندار عمارت په سپینو ګنبدونو او دنګو لوړو مینارو پریوزی۔ او څه رنګ چه د خیبر دنګ لوړ غرونه د پاکستان دحفاظت ویښ سنتریان دی۔ دغه شان دا کالج د علم او تهذیب یو داسے مرکز دے چه د دے د فیض نه تراوسه بے شمیره خلق مستفید شوی دی۔ دا هم یو عجیبه اتفاق دے چه په کوم ځائے دا کالج اباد دے۔ په تیره زمانه کښے هم دغه ځائے یو عظیمه علمی خانقاه وه۔ او داسے معلومیږی چه د تعلیم و تهذیب فیضان خوړول د دے مزکے په قسمت کښے مقدر دی۔ دا کالج اوس د پیښور په عظیمه یونیورسټۍ کښے بدل شوے دے۔

لکه چه په تیرو پاتو کښے وئیلی شوی دی۔ د سنه ۱۹۳۲ء نه پس سرحدی صوبے په سیاسی لحاظ سره د هند د نورو صوبو سره برابر حیثیت موندلے وو۔ ولے د دے صوبے مالی ذرائع دومره نهٔ وو چه په لویه پیمانه د اولس د ښیګړے کارونو ته لاس اچولے شوے وے۔ اګرچه د مرکزی حکومت نه به دے صوبے ته یو کروړ روپئ د امداد په دول ورکیدلے شوے۔ ولے د دے امدادی رقم زیاته حصه به په پولټیکل ډیپارټمنټ لګیدله۔ او عوامو ته به د هیڅ څه فائده نهٔ وه۔ دغه وجه وه چه باوجود د دے چه د صوبه سرحد اولس په سیاسی شعور کښے د هند د نورو اولسونو نه وړاندے وو۔ ولے ترکومه چه د تعلیم، صنعت و حرفت، تجارت او د دے علاقے د اقتصادی بهترئ تعلق وو. د پښتنو دا علاقه د هند د نورو صوبو نه په دے باب کښے وروستو او پس مانده وه۔ د پښتنو په ټوله علاقه کښے خواه که مقبوضه وه اوکه قبائلی د سنه ۱۹۳۷ء پورے د شلو نه زیات هائی سکولونه نهٔ وو۔ په ټوله صوبه کښے د اسلامیه کالج پیښور او ایډورډ مشن کالج پیښور نه علاوه چرته ګورنمنټ کالج نهٔ وو۔ دغه شان یو کالج په ډیره اسماعیل خان کښے هندوانو قائم کړے وو۔ په ټوله صوبه کښے د کوټو په شمیر یو څو ورنیکلر مډل سکولونه وو۔ د پرائمری او مډل پورے تعلیم د ډسټرکټ بورډ په حواله وو۔ انګریزی تعلیم بالخصوص اعلیٰ تعلیم د عام اولس بلکه د متوسط طبقے د وس نه هم بهر وو۔ په ټوله صوبه کښے تجارت او اقتصادیات د غیر مسلمو په لاس کښے وو.

دا غیرمسلم اقلیت دتعلیم په میدان کښې هم وړاندې وو. دغه وجه ده چه پښتو
خپله تعلیمي او اقتصادي پسماندګی په ډیر شدت سره محسوس کوله.
لکه چه وړاندې وئیلې شوي دي. په دې صوبه کښې په ۱۹۳۷ء کښې دکانګرس
وزارت قائم شوې وو. د وزارت دتشکیل نه پس دوئ د تعلیم توسیع ته هم
توجه اوکړه. لیکن د صوبې مالي ذرائع دومره لنډ تنګ وو چه داولس دخواهشاتو
او مطالباتو مطابق کار نۀ شو کیدلې. بیا هم دې وزارت دصوبې داقتصادي بهترئ
په لړکښې هم یو قدم اوچت کړو. او د تخت بهائ په مقام کښې د هندوستاني صنعتکارو په
امداد دچینو یو وړه کارخانه اودروله. او په ټوله صوبه کښې دا واحده کارخانه ده چه د
پاکستان نه اګاهو په دې صوبه کښې موجوده ده. دغه شان چه کانګرس وزارت په
دوئم ځل په ۱۹۴۶ء کښې تشکیل شو. نو د تعلیم د بهترئ په لړکښې دې وزارت یو
بل انقلابي قدم اوچت کړو. او هغه دا چه د صوبې ټولې پرائمري او ثانوي مدرسې
ئې د ډسټرکټ بورډ د تحویل نه د صوبې د حکومت تحویل ته منتقلې کړې. او دغه
شان ئې د تعلیم د بهترئ په لړکښې د هند په نورو صوبو اولیت حاصل کړو. دوزارت
په دې اقدام سره د ډیرو انتظامي خامیئو اصلاح اوشوه. په تعلیمي نظام کښې یکسانیت
پیدا شو. او د سکون او اطمینان فضا پیدا شوه.
د پاکستان د قیام نه پس په دې صوبه کښې دمسلم لیګ وزارت قائم شو. په دې
وزارت کښې خان عبدالقیوم خان وزیر اعلیٰ وو. چه د مسلم لیګ اسمبلئ پارټئ صدر
وو. نوموړې د پاکستان دجوړیدو نه څه دوه کاله اګاهو په ۱۹۴۵ء کښې د کانګرس
نه مسلم لیګ ته را اوړیدلې وو. په دې وزارت کښې میان جعفر شاه کاکاخیل، ملک الرحمان
خان کیاني، سالار ایوب خان او خان محمد عباس خان هم وزیران وو. دا وزارت د
۱۹۵۱ء پورې قائم وو. د دې وزارت لویه کارنامه د پیښور یونیورسټئ د قیام په لړ
کښې کوششونه او د یونیورسټئ قیام دې.
په اپریل ۱۹۴۸ء کښې قائد اعظم مرحوم د پیښور په دوره راغلې وو. په دې موقع
هغوئ اسلامیه کالج ته هم تلې وو. دلته هغوئ په خپل تقریر کښې دا اووئیل چه زما
عزیز ترین خواهش دا دې چه ستاسو دا کالج زر ترزره په یو داسې یونیورسټئ کښې بدل
شي چه په هغې نۀ صرف ستاسو د ارزوګانو تکمیل اوشي بلکه د هغې فیض د وسط
ایشیا پورې هم اورسي. هغوئ دا هم اووئیل چه تاسو به د خپلو توقعاتو نه

ډیر زر دا یونیورسټي حاصله کړې. ولې افسوس دے چه د هغوی عمر وفا او نهٔ کړه. او د دے نه پس هغوی ډیر زر په حق اورسیدل. (ستمبر سنه ۱۹۴۸ء). اود پیښور یونیورسټۍ د قیام مسئله په ملله کښې پرے وتله. د اسلامیه کالج اود پښتنو د تعلیمي ترقۍ سره د قائد اعظم مرحوم مینه د دے نه معلومیږي چه هغوی د خپل ذاتي جائداد نه غلور لکه روپۍ د پښتنو د پاره د کامرس کالج قائمولو په غرض وقف کړې وې. دا کالج اوس په پیښور یونیورسټۍ کښې قائم شوے دے.

په سنه ۱۹۵۰ء کښې د صوبے وزارت د مرکزي حکومت سره د پیښور یونیورسټۍ په باب کښې مسلسل مطالبه اوکړه. په دے موقع اگرچه څنې وزیرانو او ذمه دارو افرادو د یو نیورسټۍ په قیام کښې د تعطل پیدا کولو کوشش کولو. ولې عبدالقیوم خان چه په دغه وخت کښې د دے صوبے وزیراعلیٰ وو. د یو نیورسټۍ د قیام د پاره سخت کوشش اوکړو. چنانچه مرحوم لیاقت علیخان وزیر اعظم د قائد اعظم د وعدے د ایفا کولو په لړ کښې یو مضبوط قدم اوچت کړو. او د یونیورسټۍ د قیام منظوري ئے ورکړه. د دے یونیورسټۍ د افتتاح دستوره په ۱۳ ر اکتوبر سنه ۱۹۵۰ء کښې د لیاقت علی خان مرحوم په لاس اوشوه.

د پیښور یونیورسټي اگرچه د عمر په لحاظ د پاکستان په یونیورسټیو کښې کشره ده. ولې د خپلې کارگزارۍ او علمي قدر و قیمت له مخه په ټوله اسلامي دنیا کښې د خپل نوعیت واحده یونیورسټي ده. د پښتنو د تعلیمي ترقۍ په لړ کښې د دے یونیورسټۍ قیام یو داسے اهم اقدام دے چه د هغې نمرخومره ستائینه او ستې نوبے ثنایه به وي. د دے یونیورسټۍ نه یواځے د سابق صوبه سرحد خلق فائده نهٔ اخلي، بلکه د مغربي پاکستان د نورے حصے اود قبائیلي علاقو طالب علمان په ډیر شمیر کښې د مختلفو علومو فنونو په زدکړه کښې لگیا دي. او دا هم د دے یونیورسټۍ برکت دے. چه هغه قبائیلي پښتانهٔ چه د انگریزانو په وخت کښې به دغرڅه اووحشیانو په الفاظو کښې یادیدل. نن د هغوی اولاد د ډاکټرۍ، انجنیرۍ، وکالت، زراعت او سائنس د مختلفو شعبو په تعلیم کښې لگیا دي. او دا قبائیلي پښتانهٔ د دے جوګه شوي دي چه د دوئ خپل ډاکټران، انجنیران، وکیلان، د زراعت ماهران او استاذان پیدا کړې دي. او لگیا دي پیدا کوي ئے. د قبائیلي علاقو د طالب علمانو سره د حکومت او یونیورسټۍ د لورې نه په خصوصیت سره رعایتونه کیږي.

د سنه ۱۹۵۱ء په اخر کښې بيا انتخابات اوشول. دا ځل هم په صوبه کښې د خان عبدالقيوم خان په مشرئ کښې د مسلم ليګ وزارت قائم شو. دے وزارت په سنه ۱۹۵۳ء کښې د تعليمي ترقئ او توسيع په لړ کښې يو بل اهم قدم اوچت کړو. دا د فيسونو معاف کول وو. د صوبے د وزارت له خوا د هلکانو د پاره د مډل جماعتونو پورے او د جينکو د پاره د هائ کلاسونو پورے فيسونه معاف شول. د وزارت په دے اقدام غريبو خلقو ته لويه فائده اورسيده. او د تعليم د حصول په لور د خلقو ميلان زيات شو. دا رعايت تر اوسه قائم دے. قيوم وزارت دابتدائ تعليم توسيع ته هم توجه اوکړه. او په ټوله صوبه کښې د ابتدائ سکولونو جال خور شو. وروستو د انقلابي حکومت په وخت کښې د سکولونو په شمير کښې نوره هم اضافه اوشوه. او نوره هم روانه ده کال په کال کيږي. نن ورځ په هر اهم مقام کښې هائ سکول او د هرے علاقے په اهم مقام کښې کالج قائم دے. د هائ سکولونو په خوا اوشا کښې مډل سکولونه، لوئر مډل سکولونه، او پرائمري مدرسے جوړے شوي دي. په سابق صوبه سرحد او قبائيلي علاقو کښې د تعليمي توسيع و ترقئ اندازه د دے نه لګيدے شي چه د ازادئ په اغاز کښې په سابق صوبه سرحد او قبائيلي علاقو کښې ټول وړه لوئے سکولونه (۱۳۸۶) وو. چه صرف د کوټو په شمير په کښې يو څو کالجونه وو. ولے د سنه ۱۹۶۲ء پورے دوړو لويو سکولونو او کالجونو شمير (۳۶۵۶) ته اورسيد.

د تعليم د توسيع کار په قبائيلي علاقو کښې هم په ډيرے تيزي روان دے. د قبائيلو په انتهائ دور افتاده علاقو کښې د هلکانو جينکو د پاره سکولونه قائم شوي دي. د انګريزانو په وخت کښې په ټوله قبائيلي علاقه کښې وړه لوئے صرف (۰۷) سکولونه وو. چه څلور ينم زره بچو به په کښې تعليم حاصلولو. ولے نن ورځ په قبائيلي علاقو کښې څلورسوه سکولونه جاري شوي دي. او څلو ينښت زره بچي په کښې تعليم حاصلوي. او نور نور سکولونه هم پرانستلے شي. د قبائيلو په تاريخ کښې دا اول ځل دے چه په دے علاقو کښې د تعليم د خورولو د پاره په دومره منظمه طريقه اقدامات شوي دي. د قبائيلو د تعليم د پاره جدا افسران مقرر دي. دا علي تعليم په لړ کښې د قبائيلو سره فياضانه سلوک کيږي. په قبائيلي علاقو کښې هم د اعلي تعليم د پاره کالجونه قائم شوي دي. او د دے نه علاوه قبائيلي طالب علمانو ته د اعلي تعليم د حصول د پاره بيش قيمته

وظيفې هم ورکولے شي ـ دملک نه بهر چه داعلیٰ تعليم دپاره کوم طالب علمان ليږلے شي ـ په هغو کښې قبائيلي طالب علمانو ته معقوله برخه ورکولے شي. غرض په کومه تيزئ او تندئ چه د قبائيلي علاقو د تعليمي پس ماندګئ لرے کولو کوشش روان دے ـ د هغې نه دا توقع کيدے شي . چه ډير زر به دا قبائيلي پښتانهٔ په تعليمي لحاظ سره هغه مقام ته اورسي دکوم چه دوئ حقدار دي ـ

پاکستان په بنيادي طور يو زراعتي ملک دے ـ او د دے ملک داستوګنو د غالب اکثريت کسب زراعت دے ـ زمونږ د امدن (٦٠) فيصد د زراعت نه حاصليږي ـ او د بيروني زرمبادله (٨٠) فيصد په زراعتي اجناسو ګټلے شي ـ په دے بنا زراعت زمونږ د معيشت د پاره ډير ضروري دے . په دے بانده زمونږ د ملک دعوامو دژوند معيار موقوف دے . او د عوامو خوشحالي د زراعتي ترقئ سره تړلې ده ـ

د پښتنو اکثريت هم زراعت پيشه دے ـ د سابق صوبه سرحد هغه زمکے چه چرته د آبپاشئ انتظام موجود دے ـ ډيرے زرخيزے او د پيداوار مړنئ دي . ليکن د قيام پاکستان نه وړاندے داخلق په اقتصادي لحاظ سره ډير بدحاله وو ـ ځکه چه د زراعت د بهترئ د پاره څه موثر اقدامات نهٔ وو شوي ـ او د دے څرګند ثبوت دادے

**چه دانګريزانو په سل کاليز دور اقتدار کښې په سابق صوبه سرحد کښې د آبپاشئ دپاره صرف (٩٦٥) ميله نهرونه وو ـ ولے د آزادئ نه پس په څوارلس پنځلس کاله کښې (٤٢٥) ميلونوره اضافه وشوه . د نهرونو نه علاوه په د يرو ځايونو ـ**
کښې ټيوب ويلونه هم اوکنستلے شول ـ او په دے کښې په تيزئ سره اضافه روانه ده.

د ازادئ نه پس د دے علاقے د اقتصادي بهترئ په لړکښې مؤثر اقدامات اوشول د ترقي يافته ملکونو نه اعلیٰ تخمونه راوغوښتلے شول ـ د پيداوار د زياتولو په لړکښې زميندارانو ته کيمياوي ضرے ورکولے شي ـ د محکمه زراعت دلوري نه په مختلفو فارمونو کښې نوي نوي تجربے لګيادي کيږي ـ او د هغې نه زميندارانو ته فائدے رسي ـ يو زمانه وه چه د صوابئ په علاقه کښې به په ارتونو کښې تماکو کرلے شول ـ چه د نسوار او چيلم د پاره به پکاريدل ـ ولے نن ورځ د بهرملکونو نه اعلیٰ قسم تماکو راغوښتلے شوي دي. او هغه د هشت نغر، مردان او صوابئ په علاقه په ډيره لويه پيمانه کرلے شي ـ او د هغې په وجه د زميندارانو په اقتصادي ژوند کښې ډيره ترقي راغلې ده ـ د تماکو کرلو سره يواځې زميندارانو ته فائده نهٔ ده رسيدلې بلکه د دے په وجه په دے علاقه کښې په سوونو د تماکو بهټئ هم قائمے شوي دي ـ چه په هغې کښې په زرګونو مزدوران ځان له

روزی پیدا کوی. د تماکو صنعت په سابق صوبه سرحد کښې په ډیره ترقۍ روان دے. او د دے علاقې د خلقو د اقتصادی خوشحالۍ یو لوئ باعث دے.

گنے یوبل زراعتی جنس دے چه د پښتنو په علاقه کښې د زمیندارانو د اقتصادی حالت په بهترۍ کښې لویه برخه لری. د پېښور مردان او بنوں په علاقه کښې بے حسابه گنے پیدا کیږی. د قیام پاکستان نه اول به د دے گنې ډیره حصه په فائده نۀ راتله. او د لږ شان گنې نه په زړه طریقه په گلی والوگانو کښې گړه جوړیدله. ولے نن ورځ د دے گنې د زبیښلو د پاره په مردان، تخت بائی او چارسده کښې کارخانے او درولے شبوی دی. او چینی ترینه جوړیږی. بیا هم دومره زیات گنے پیدا کیږی چه د پېښور او بنوں په علاقه کښې د دوؤ نورو کارخانو او درولو تجویز دے.

د پېښور، مردان او بنوں علاقې په خصوصیت سره د میوه جاتو د پیداوار د پاره مشهورے دی. په دے علاقو کښې داوړی میوے دی او که د ژمی پریوانه پیدا کیږی. دغه وجه ده چه د میوو د دے پریوانۍ له کبله سابق صوبه سرحد ته د پاکستان کیلے فورنیا ویلے شی. د ازادی نه وړاندے به د دے میوو ډیره حصه بکار نۀ راتلله. ځکه چه په ټول سرحد کښې د میوو د اوچولو او په ډبو کښې د بندولو د پاره صرف یو کارخانه وه. ولے نن ورځ د میوو د اوچولو او په ډبو کښې د بندولو د پاره درے کارخانے کار کوی. په دے وجه د میوو نه زیات نه زیات امدن حاصلیږی. او د دے په نتیجه کښې د باغونو شمیر ورځ په ورځ زیاتیږی. او د دے علاقې ته د پاکستان د یو باغ حیثیت موندلے دے.

اګر چه دا خبره په خپل ځائے درسته ده چه زموږ د اولس معیشت د زراعت سره تړلے دے. لیکن دا حالات تر ډیرے مودے پاتے کیدل زموږ د ملکی ترقۍ د پاره بهتر نۀ شی کیدے. زراعتی ملک همیشه پس مانده او غریب وی. په خلاف د صنعتی ملکونو چه هلته خلق ډیر دولتمند او فارغ البال وی. په صنعت و حرفت کښې هره ورځ نوی نوی کسبونه، کارونه او هنرونه پیدا کیږی. او د دغ په وجه زرګونو مزدورانو ته د کار موقع حاصلے وی. نوی نوی کاریګر او هنرمند پیدا کیږی. او د خلقو په ارام او سوکالۍ کښې زیاتے راځی.

صنعتی ترقی د بیرونی زرمبادله ګټلو هم لویه ذریعه ده. چنانچه د تیرو یوڅو کلونو راسے زموږ ملک هم د زرعی نظام معیشت نه په وتلو او په صنعتی نظام معیشت

کښې دا ځلیدونکې دے - یعنې د صنعتي انقلاب اغاز شوے دے - او توقع کیدے شي چه که د صنعتي ترقۍ هم دغه رفتار وي نو زمونږ ملک به هم زر تر زره د صنعتي ملکونو په قطار کښې د اودریدلو قابل شي - د دے معاشي تبدیلۍ په وجه به زمونږ د خلقو په ژوند او تمدن ، طرز معاشرت او افکار و خیالاتو کښې هم تبدیلي پیداشي - د تعلیم په خوریدو او د صنعتي ترقۍ په وجه د اقتصادي حالت په ښهٔ کیدو به د ژوند معیار اوچت شي - په ذهنیت او نقطه نګاه کښې به تبدیلي پیدا شي - د قومیت احساس به ژوندے شي - او د خو شحالۍ او اسوده‌ګۍ دور به شروع شي -

د بده مرغه د برصغیر د تقسیم په وخت کښې د انګریزي حکومت د فیصلے په نتیجه کښې ټول صنعتي علاقے بهارت ته ورکړے شوے - او د پاکستان په حصه کښې ښځې زرعي علاقه راغلي وه - هندوستان ته قریبًا څلور سوه کارخانے ورکړے شوے وے - او د دے په مقابله کښې په ټوله پاکستاني علاقه کښې د وړو لویو کارخانو شپږ ځلوېښت وو - د صوبه سرحد حالت خو ډیر خراب وو - په دے صوبه کښې د تقسیم نه وړاندے صرف دوه کارخانے یوه د چینو په تخت باځ کښې او بله د میوو اوچولو په ناصرپود کښې وه -

د انګریزانو په دورا قتدار کښې د سرحد او قبائلي علاقو په باب کښې د دوئ نظریه دا وه چه په دے زمکه بے د وحشي انسانانو نه نور څه نشته - ولے حقیقت خو داسے نهٔ وو - دا علاقے د زرعي خام پیداوار نه علاوه په معدني ذخائرو هم ډیرے شتمنے دي - او د دے علاقو خلق د سیاسي شعور نه هم وافره برخه لري - چنانچه د آزادۍ نه پس د صوبے حکومت د صنعتي ترقۍ په لور توجه اوکړه - او په لږه موده کښې په دے صوبه کښې د کارخانو شپږ دوه دیرشو ته اورسید - او د رخت سازۍ، دوا سازۍ ، چینو ، سګرټو ، ټیلیفون ، تارپین ، ګته سازۍ ، او ماچسو جوړولو کارخانے اودرولے شوے - دا کارخانے اکثر د پیښور ، مردان ، هزارے او بنوں په ضلعو کښې قائمے کړے شوي دي -

د وحدت مغربي پاکستان د قیام نه پس د حکومت له خوا د پس مانده علاقو صنعتي ترقۍ ته نوره توجه هم شوې ده - چنانچه په لږه موده کښې په سابق سرحد کښې نورے نوي نوي کارخانے قائمے شوي دي - او په دے علاقو کښې د وړو لویو کارخانو شمیر (۱۰۸) ته رسیدلے دے - دا نوي کارخانے د سیمنټو ، سنګِ مرمرو ، رخت سازۍ ،

دمیوو د حفاظت ، د بناسپتي غوړو ، ګلیسرینو ، ماچسو جوړولو ، او دلرګي داوچولو دی - د سابق صوبه سرحد نور پاتې ضلع هم د دے صنعتي ترقۍ نه محرومه نهٔ دی ساتلے شوی - د کوهاټ په ضلع کښې د رخت سازۍ یوه کارخانه قائمه شوی ده - په دے ډول په ډیره اسماعیل خان کښے هم د رخت سازۍ یوه کارخانه زیر تجویز ده -

د قبائیلي علاقو د صنعتي ترقۍ په لړکښے هم موثر اقدامات شوی دی - د هرے علاقے د طبعي ماحول او پیداوار په مناسبت په قبائیلي علاقو کښے د کور نو کسبونو د زدکړے د پاره مرکزونه او تربیت ګاهونه قائم شوی دی - په دے مرکزونو او تربیت ګاهونو کښے په سوونو قبائیلي پښتانهٔ د مختلفو هنرونو او کسبونو زده کړه کوی - د وحدت مغربي پاکستان د قیام نه پس په قبائیلي علاقو کښے د درنو صنعتونو د قائمولو په لور هم توجه شوی ده - په دے لړکښے په ملاکنډ ایجنسۍ کښے پنځه لوئے کارخانے زیر تعمیر دی - دا کارخانے د ماچسو جوړولو ، لرګو او چولو ، سګرټ سازۍ ، ګلوکوز ، نشاستے او رخت سازۍ دی -

د زراعت د ترقۍ په لړکښے نهٔ صرف د سابق صوبه سرحد د مختلفو علاقو د آبپاشۍ په لور توجه شوی ده - بلکه په قبائیلي علاقو کښے هم د آبپاشۍ او اوبهٔ خور منصوبے په عمل کښے راغلي دی - او هغه مزکے چه د مودو مودو نه شاړے او غیر ابادے پرتے وے اوس په شنو او سنیرازه فصلونو پټے دی - د ملک په هغه حصو کښے چه د نهری نو ابادیو په سلسله کښے کومے شاړے او غیر ابادے مزکے ابادولے شي په هغ کښے قبائیلي پښتنو ته هم په ډیرے فیاضۍ مزکے ورکړے کیږی - د قبائیلي پښتنو د اقتصادی بهترۍ په لړکښے دا یو داسے اقدام دے چه د دے په وجه به د قبائیلو حالت ډیر ښهٔ شي - او د دوئ تعلق به د ملک د نوراولس سره په مضبوطو بنیادونو قائم شي -

په انګریزی دور حکومت کښے قبائیلي پښتانهٔ د ملک د نوراولس نه جدا ساتلی شوی وو - او د ملک په سیاسیاتو کښے د دوئ هیڅ څه حصه نهٔ وه - ولے د ازادۍ نه پس د اجنبیت او غیریت بالکل ختم شو - د هغه اقداماتو نه علاوه کوم چه د قبائیلو د هراړخیزه ترقۍ په لاړ کښے شوی دی - قبائیلي پښتنو ته د پاکستان په آئین ساز مجالسو کښے نمائندګي هم ورکړے شوی ده - او د قبائیلو په تاریخ کښے دا وړومبے مثال

دے۔ چہ د قبائیلو نمائندګان ہم د پاکستان په مجالس آئین ساز کښے دملک د نورو نمائندګانو سره اوږه په اوږه شامليږی۔ او د ملک او حکومت په معاملاتو کښے حصه اخلی۔ د انقلابی حکومت په دور کښے چه د بنیادی جمهوریتونو کوم نظام قائم شوے دے۔ د قبائیلو په خواهش دا نظام د دوئ په علاقو کښے هم مؤثر شوے دے۔ او د مارشل لاء نه پس چه د نوی آئین مطابق کوم حکومت قائم شوے دے په هغے کښے قبائیلی پښتنو ته هم په صوبائی او مرکزی مجالسو کښے نمائندګی ورکړے شوی ده۔

قبائیلی پښتانهٔ اګرچه په تعلیم او اقتصادی لحاظ سره پس مانده دی۔ ولے په سیاسی شعور کښے ډیر وړاندے دی۔ او د دے اعتراف هغه انګریزی مدبرینو هم کړے دے د کومو تعلق چه د دے قبائیلو سره راغلے وو۔ د قیام پاکستان نه پس قبائیلی پښتنو ته د خپلے همه اړخیزے ترقئ د پاره یو لوئ میدان په لاس ورغلے دے۔ دحکومت د لوری نه د دے خلقو د بهترئ د پاره همدردانه او فیاضانه اقدامات شوی دی او روان دی کیږی۔ دا هم درست ده چه دا قبائیلی پښتانهٔ د یو ډیرے اوږدے زمانے نه د دے خپلو د ننګو لوړو غرونو په مینځ کښے په یو خاص ماحول او دیو مخصوص نظام حیات لاندے په ژوند تیرولو مجبور وو۔ ولے د ازادئ نه پس د بدلو حالاتو په نتیجه کښے د دوئ په ژوند او خیالاتو کښے فرق راغلے دے۔ دوئ د وخت چیلنج قبول کړے دے۔ او د زمانے د تقاضو احساس ئے کړے دے۔ د غه وجه ده چه په څومره تیزئ د دوئ د بهترئ د پاره کوم کارونه روان دی۔ دوئ په هغو کښے د نورے نورے اضافے او تیزئ مطالبه کوی۔

د نورو نورو سکولونو د اعلیٰ تعلیم د پاره د کالجونو د اقتصادی او صنعتی ترقئ د پاره د کارخانو په بهری علاقو کښے د نورو نورو زمکو مطالبات او هسپتالونو او سړکونو د تعمیر خواهشات دا سے خبرے دی چه د قبائیلو د حالت او ذهنیت په تبدیلئ دلالت کوی۔ او هرکله چه په دوئ کښے تعلیم عام شی او د اقتصادی ترقئ په وجه د دوئ د ژوند معیار اوچت شی نو هغه قبائیلی شجاعت چه د جهالت او غربت په وجه به دوئ په خپل مینځ کښے په جنګونو او دشمنیو کښے ضائع کولو هغه به د پاکستان د حفاظت د پاره د اوسپنے یو دیوال ثابت شی۔

د پاکستان د قیام نه پس د قومی ضروریاتو او وسائیلو پیش نظر د لویو لویو

کثیرالمقاصدو بندونو او برقاېي سکیمونو منصوبې جوړې شوې دي- سابق صوبه سرحد ته د قدرت د لوري نه بې شماره قدرتي وسائیل ورېخښلي شوي دي -چه په هغوکښې د آبي ذخیرو پریوانې قابل ذکر ده- دا آبي ذخیرې د دې علاقې د استوګنو په اقتصادي ترقۍ کښې لوئې اهمیت لري- د ازادۍ نه پس د دې آبي ذخیرو نه د فائدې اوچتولو په لړکښې د خاص منصوبه بندۍ د لاندې څه باقاعده کوشش نهٔ وو شوې- اګر چه څنې منصوبې خو جوړې شوې وې ولې د هغې په تیارۍ کښې د مجموعي ابادۍ د خوشحالۍ او د اقتصادي بهبودۍ خیال نهٔ وو ساتلې شوې- د دې عمومي نتیجه دا شوه چه د دې منصوبو د خرڅ په مقابله کښې د هغې نه فائده کمه وه- په دې حالاتو کښې دا ضروري وه چه داسې جامع منصوبه بندي او داسې اقدامات اوکړې شي چه د هغې نه د ابادۍ زیاتې حصې ته فائده اورسي- په دې لړکښې د مکملې منصوبه بندۍ ضرورت وو- په دې غرض چه زیات نه زیات قومي وسائل یو ځائې کړې شي -او د قدرت د دې بخښشونو نه فائده پورته کړې شي - خو د دې مقصد د حصول د پاره د سابق صوبه سرحد مالي وسائل دومره وسیع نهٔ وو- او مالي نیمګړتیا به هر وخت موجود وه- ولې د مغربي پاکستان د وحدت قیام د دې مقصد په حصول کښې حد په صورته مفید ثابت شو- یعنې هرکله چه دکهو ترقي یافته علاقو مالي وسائل د ترقي یافته علاقو د وسائیلو سره یو ځائې کړې شو- نو د پس مانده علاقو د قدرتي وسائیلو نه په بهتره طریقه د کار اخستلو امکانات روښانه شول- او هرکله چه په ۲۷ اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء په ملک کښې انقلابي حکومت قائم شونو د ملک د ترقیاتي کارونو د منصوبه بندۍ په لور زیاته توجه ورکړې شوه- په دې لړ کښې د اوبو او بجلۍ وسائیلو ته د ترقۍ ورکولو په غرض په سنه ۱۹۵۹ء کښې یوه اداره قائمه کړې شوه- چه د "واپډا" په لفظ مشهوره ده- په سابق صوبه سرحد کښې چه کوم کثیر المقاصد منصوبې د"واپډا" په نګرانۍ کښې تکمیل ته رسیدلې دي او یا زیر تعمیر او زیر تجویز دي په هغوکښې به د څنو په لنډ ډول ذکر بې ځایه نهٔ وي:-

(۱) د ورسک کثیرالمقاصد منصوبه :- د دې منصوبې په حقله ابتدائي کاروائي په سنه ۱۹۵۳ء کښې شوې وه- ولې په دې منصوبه باقاعده کار د وحدت مغربي پاکستان د قیام نه پس په سنه ۱۹۵۶ء کښې شروع شو- ورسک د پېښور نه په قطب قبله پڅو بیشت میله لرې د دریائې کابل په غاړه یو مقام دې- دلته په سیند باندې یو عظیم

بند تړلے شوے دے. چه په سن۱۹۶۰ء کښے تکمیل ته رسیدلے دے. د بند په خوا کښے یو لوئے بجلی گهر هم تعمیر شوے دے. چه یو لک او شپیته زره کلو واټه بجلی پیدا کوی. په دے بجلی گهر کښے نور توسیع هم کیدونکی دے. او د هغے په تکمیل به د بجلئ پیداوار دوه لکه او څلویښت زره کلو واټه ته اورسی. د شاړو او غیر ابادو زمکو د اوبهٔ خور په غرض د بند په دواړو غاړو نهرونه هم تیاریږی چه د هغے نه به یو لک اوولس زره ایکړه مزکه سیرابیږی. د دے نهرونو نه به قبائیلی خلقو ته هم لویه فائده اورسی چه دے منصوبه پنځه دیرش کروړه روپئ لگیدلی دی.

(۳). بله کثیر المقاصد منصوبه د کرم گړهئ ده چه د کرم په سیند د کرم گړهئ په مقام تعمیر شوی ده. د دے منصوبے د یوے اهمے حصے تکمیل په سن۱۹۵۵ء کښے شوے دے. او د هغے په نتیجه کښے د ډیره اسماعیل خان ډویژن اکثرو مقاماتو ته بجلی رسول شوی ده. او د بجلئ د توسیع کار لا هغه شان جاری دے. د دے بند د آبی ذخیرے نه به د خشک سالئ په وخت کښے د اوبهٔ خور دپاره اوبه هم ورکیدے شی.

د ورسک او کرم گړهئ د منصوبو نه علاوه د کوهاټ په ضلع کښے د تانده بند تعمیر هم په ډیرے تندئ روان دے. د دے بند په تعمیر به (۳۵۰۰۰) ایکړه زمکه سیرابه شی. او دغه شان به د دے پس مانده ضلع د خلقو اقتصادی حالت ډیر بهتر شی. په ډیره اسماعیل خان ډویژن کښے دغه شان یو کثیر المقاصد منصوبه (گومل زام ډیم) د زیر تجویز ده. د دے منصوبے مطابق به د جنوبی وزیرستان په ایجنسئ کښے په دره گومل کښے د کجهوری کچ په مقام د گومل سیند اوبهٔ جمع کولے شی. د دے منصوبے په تکمیل به د دے علاقو (۵) زره) ایکړه زمکه اوبهٔ موی. او د سیلابونو بندیز به هم اوشی. دلته به (۲۲ر۰۰۰) کلو واټ بجلی هم پیدا کولے شی. د دے آبی ذخیرے نه به د کلاچئ او ټانک هغه زمکه سیرابه شی. چه نن ورځ د اوبو د نیشتوالی له کبله سرے میرے دی. د دے ډیم ابتدائی کار به شاید چه د سن۱۹۶۵ء پورے ختم شی. او د دے نه پس به په اصل منصوبه کار شروع شی.

دغه شان یو ډیم د خانپور سره نزدو په «هرو سیند» باندے زیر تعمیر دے. د دے ډیم تکمیل به په څلورکاله کښے اوشی. په ډیم کښے به (۵۰۰۰ ایکړ فټه) اوبه جمع کولے شی. او (۱ر۱۳۰ر۰۰۰) ایکړه زمکه به پرے سیرابیږی. د دے ډیم په تعمیر به څه د پاسه شپږ کروړه روپئ خرچ کولے شی.

هم په دے ډول په اباسیند باندے د تربیلے سره نزدو یو عظیم الشان ډیم زیر تعمیر

دے۔ ددے ډیم په تعمیر به دوه اربه او دیرش کروړه روپۍ خرڅ راځي۔ دلته به یو بجلی گهر هم جوړیږي۔ چه پنځلس لکه کلو واټه بجلی به پیدا کوي۔ په دے ډول د اوبۀ خوړ او آب پاشۍ په غرض په پیښور ډویژن کښے څنے نورے ورے ورے منصوبے هم مکملے شوي دي۔ او توقع کیدے شي چه په دریمه پنځکلیزه منصوبه کښے به ددے علاقو د اقتصادي او زراعتي ترقۍ په لور نوره هم همدردانه او فیاضانه توجه اوکړے شي۔

**بجلی** :- په موجوده زمانه کښے د ترقۍ دارومدار په بجلۍ دے۔ د یو ملک د ترقۍ اندازه د بجلۍ د پیداوار او د هغ د خرڅ نه په اسانۍ سره لګیدے شي۔

د ازادۍ نه وړاندے په سابق صوبه سرحد کښے وړومبے بجلی گهر په سنه ۱۹۳۸ء کښے د جبن (ملاکنډ) په مقام تعمیر شوے وو۔ د پاکستان د جوړیدو نه پس په سنه ۱۹۵۲ء کښے په دے کښے نور توسیع هم اوشو۔ او دوه مشینونه پکښے نور اولګولے شول۔ د غه شان د مشینونو شمیر پنځو ته اورسید و۔ دا بجلی گهر (۱۹۶۰۰) کلو واټه بجلی پیدا کوي۔ د دے نه علاوه یو بل بجلی گهر په درګۍ (ملاکنډ) کښے هم قائم شو۔ چه په هغ کښے څلور مشینونه کار کوي او (۲۰۰۰۰) کلو واټه بجلی پیدا کوي۔ د ورسک بجلی گهر په سنه ۱۹۶۱ء کښے تکمیل ته رسیدلے دے۔ او (۶۰۰۰۰۱) کلو واټه بجلی پیدا کوي۔ چنانچه نن ورځ ددے علاقے د بجلۍ پیداوار دوه لکه کلو واټه ته رسیدلے دے۔ دا مقدار په ټول مغربي پاکستان کښے د بجلۍ د پیداوار دریمه برخه ده۔ د کرم گړهۍ د منصوبے سره په ډیره اسماعیل خان ډویژن کښے د بجلۍ په توسیع کښے ډیره اساني او ترقي شوي ده۔

**صحت** :- ددے حقیقت نه انکار نۀ شي کیدے چه د یو قام خوشحالۍ د هغه قام د افرادو په صحت موقوف وي۔ که چرے د یو قام اکثر افراد په جسماني لحاظ سره کمزوري او د مرضونو جالے وي نو هغه د هغۀ قامونو نه سره د کمو افرادو چه روغ جوړ او صحت مند وي د ترقۍ په منډه کښے سیالی نۀ شي کولے۔ ددے حقیقت په رڼا کښے حکومت پاکستان خپل اولس ته د طبي سهولتونو او اسانیتو مهیا کولو مسئله همیشه سرفهرست ګڼلی ده۔ او ددے یو سرسري اندازه ددے نه لګیدے شي چه د ازادۍ نه وړاندے په سابق صوبه سرحد کښے د صحت د وړو لویو ادارو شمیر (۱۹۲) وو چه په هغ کښے د (۳۳۱۶) بسترو انتظام موجود وو۔ ولے نن ورځ په پیښور ریجن کښے یعني د پیښور او ډیره اسماعیل خان په ډویژنونو کښے د هسپتالونو او د سپنسریانو شمیر (۳۷۷) ته رسیدلے دے۔ چه په کښے د (۷۷۱۰) بسترو انتظام موجود دے۔ په وړومبۍ او دریمه پنځکلیزو منصوبو کښے عواموته د طبي اسانیتو په مقله

ډیرے منصوبے منظورے شوی وے۔ او هغه سرته رسیدلی دی۔ په دے منصوبو کښے د نورو خبرو نه علاوه د ملیریا او نری رنځ د بندیز په حقله د خاصو انتظاماتو او کوششونو بندوبست شوے دے۔ عوامو ته د بی۔ سی۔ جی ټیکے لګولے شی۔ او د دے مرض د انسداد په غرض په مختلفو ځایونو کښے د ټی بی کلینکونه قائم شوی دی۔ او په لکئ کښے هم دغه شان یو ټی بی کلینک پرانستے کیدونکے دے۔

د ازادئ نه وړاندے د سابق صوبه سرحد په ضلع هزاره کښے د ډاډر سینی ټوریم موجود وو۔ چه په کښے د (۱۰۴) بسترو ګنجائش وو۔ د ازادئ نه پس په دے کښے نور توسیع اوکړے شوه۔ او نن ورځ په دے کښے د (۳۰۴) بسترو ګنجائش موجود دے۔ د دے نه علاوه د تپ دق یو ورکوټے هسپتال په بغداده (مردان) کښے هم قائم شوے دے۔ د وحدت مغربی پاکستان نه پس د ملاکنډ په رنګک محله نوے یو مقام کښے هم یو ټی بی هسپتال قائم شوے دے۔ چه د سلو بسترو ګنجائش به په کښے موجود وی۔

غرض د ازادئ نه پس عموماً او د انقلاب نه پس خصوصاً سابق صوبه سرحد نه صرف د تعلیم، صحت، زراعت او صنعت و حرفت په لړ کښے ترقی کړی ده بلکه د ژوند په هر اړخ کښے پرمخ تګ کوی۔ د ځنګلاتو حفاظت ته توجه شوی ده۔ په روډ ټرانسپورټ کښے د قدر وړ اضافه راغلی ده۔ په ټیلیګراف او ټیلی فون کښے توسیع شوے دے۔ د کبانو د پرورش منصوبه شروع شوی ده۔ وړو وړو کورنو کسبونو ته ترقی ورکړے شوی ده۔ او د مقامی حالاتو مطابق په مختلفو ځایونو کښے د کورنو کسبونو د زدکړے د پاره مرکزونه قائم شوی دی۔

په دے مرکزونو کښے د څنو تفصیل په لنډ ډول داسے دے:-

**د ریښمو جوړولو مرکز:-** د حکومت د لوری نه په پیښور کښے یو لوئے مرکز قائم شوے دے۔ چه په هغ کښے د ریښمو د چینجو د پالنے او د هغوی د اګیټو نه د ریښمو جوړولو زده کړه ورکولے شی۔ په دے مرکز کښے د اعلیٰ قسم د شهتوتانو یوه نرسری هم ده۔ چه د هغ نه هغه خلقو ته څوک چه د ریښمو د چینجو د پالنے کار کوی۔ کال په کال بوټی ورکوټے شی۔ او د دے په مدد د ریښمو جوړولو کسب ترقی مومی۔ هغه خلق چه په دے مرکز کښے زده کړه حاصلوی هغوی ته د حکومت د لوری نه وظیفه هم ورکولے شی۔

د پیښور په ضلع اورمړ پایاں نوے کلی کښے د رخت او بدلو یو مرکز هم قائم شوے دے۔ په دے مرکز کښے دیرشو افرادو ته د رخت او بدلو زده کړه ورکولے شی۔ د دے مرکز تربیت یافته کاریګران ډیر خوند ناک او په مختلفو رنګونو کښے رختونه تیاروی۔

دکورنو کسبونو د زدکړے یو بل مرکز هم په پېښور کښے قائم شوے دے۔ په دے مرکز کښے د ،، بنیت ،، نه د مختلفو څیزونو جوړولو زدکړه ورکولے شي ۔ او د تربیت په دوران کښے دیرش روپۍ وظیفه هم ورکولے شي ۔ دغه شان یو مرکز په ډیره اسماعیل خان کښے هم قائم دے۔

د وړو وړو کورنو کسبونو د زده کړے مرکزونه په قبائیلي علاقو کښے هم قائم شوي دي۔ چنانچه په سوات کښے د وړۍ نه د پټۍ جوړولو یو تربیتي مرکز قائم کړے شوے دے۔ د دے تربیت ګاه په قیام قریبًا دوه لکه روپۍ لګیدلی دي۔ په دے کښے هر کال یو ویشت کسانو ته تربیت ورکولے شي ۔ او د زده کړے په وخت کښے څلویښت روپۍ میاشت وظیفه هم ورکولے شي ۔ د دیر په ریاست کښے هم پریوانه وړۍ پیدا کیږي ۔ نو په دے علاقو کښے دغالیچو جوړولو یو مرکز جوړول منظور شوي دي۔ په دے مرکز به څه د پاسه دوه لکه روپۍ خرچ راځي ۔ او په دے کښے به د دریانو او غالیچو جوړولو زده کړه ورکولے شي ۔ د دے مرکز په جوړیدو به نه صرف د اولس خلقو ته د روزګار موقع په لاس ورشي ۔ بلکه د دوئ د اقتصادي خوشحالۍ به یوه نوی لاره هم پیدا شي ۔

په دے مرکزونو کښے چه کوم څیزونه تیاریږي دهغ د نمائش د پاره په پېښور او سوات کښے دوه نمائشي مرکزونه هم قائم شوي دي ۔ او د دے په وجه دا څیزونه دا نه چه په خپل اولس کښے خپل ځان ته ځائے پیدا کوي ۔ بلکه د بهر ملکونو د سیلانیانو توجه هم راکاږي ۔ او په دے ډول په بهر ملکونو کښے هم د دے خوښتے امکانات پیدا کیږي ۔

د ملک د ودانۍ په لړ کښې چه موږ ته کوم کارونه کول دي. د هغې د تکميل په لاره کښې ډير ښخړنجونه اوکشالې پيداکيدے شي. قدرتي او بين الاقوامي حالات هميشه يو شان نهٔ وي. ولے موږ د يو داسے جفاکش او مضبوط قام افراد يو چه هغه هيچرے هم د ګرانوکشالو او مشکلانو نه په ويره کښے نهٔ پريوځي. موږ ته د قام د ودانۍ په لړ کښې د معجزو توقع نهٔ دي ساتل پکار. ولے په دے خبره يقين لرل او ورانديے تګ کول پکار دي. چه کوم قام په محنت، زيار او جفاکښۍ سره کارکوي هغهٔ ته د هغې بدله هم ورکيدلے شي. موږ د پرله پسے او په يو محنه مضبوط عمل او محنت په برکت خپل منزل مقصود ته رسيدلے شو. د خپل ملي مقاصدو په حصول کښې دِ الله پاک زموږ مدد ګار شي.

اوس موږ ته د ديانتدارانه مقصد او مخلصانه کوشش په اسره د عمل په لاره تګ کول پکار دي او دا لوظ هم کول پکار دي چه

موږ به خپل ځانونه د خپل خدایﷻ، قام او ملک د پاره وقف کړو ـ او د یو ښه انسان، ښه مسلمان او ښه پاکستانی په ډول به د ژوند تیرولو کوشش کوو ـ

# (فیلډ مارشل محمد ایوب خان)

د سنه ۱۹۵۸ء د فوځي انقلاب د اسبابو د لټون د پاره موږ ته پکار دي چه د پاکستان د سیاسي تاریخ په لنډ ډول جاج واخلو۔

دا یو تاریخي حقیقت دے چه د قائد اعظم مرحوم په خپلو عوامو باندے انتهائي اعتماد وو۔ او عوامو د خپل محبوب قائد سره بے پناه عقیدت لرلو۔ دا اعتماد او عقیدت دا سلسله د قائد اعظم د وفات پورے قائمه وه۔ د دے باهمي اعتماد او عقیدت نتیجه وه چه د انتهائي نامساعدو حالاتو باوجود قائد اعظم او د هغهٔ ملګري د پاکستان د مستقبل نه مایوسه نهٔ وو۔ او دا ئے یقین لرلو چه که چرے پاکستان ته څه ناڅاپي خطره پېښه شي نو دغه وخت به پاکستاني اولس د خپل ملک د حفاظت او بقا په لړکښے د هیڅ قسم قرباني نه دریغ او نهٔ کړي۔ ولے د قائد اعظم د وفات نه پس حالات دا سے پاتے نهٔ شول۔ او د مشرانو او عوامو ترمینځه د عقیدت او اعتماد هغه سلسله ډیره زرختمه شوه۔

د قائد اعظم په وفات خواجه ناظم الدین ګورنر جنرل او ټاکلے شو۔ او ښاغلے لیاقت علي خان د وزیر اعظم نه علاوه د مسلم لیګ صدر هم شو۔ که چرے ښاغلے لیاقت علي خان مرحوم وزیر اعظم نهٔ وے نو امکان کیدے شو چه د مسلم لیګ وقار ئے بیا په حال کړے وے۔ او په دے کښے چه کومے ډلے بازي او پرے جنبے جوړے شوي وے هغه ئے ملرے کړے۔ ولے د وزارت او صدارت د برغدو ذمه واریو په نتیجه کښے د مسلم لیګ تنظیم ته هغه شان توجه او نهٔ کړے شوه څه رنګ چه پکار وه۔ دغه شان د ملک په نوجوانه طبقه کښے د مسلم لیګ د مشرانو د ډله بازئ په وجه د ویزارئ جذبات رااولړزیدل۔ بیا هم چونکه ښاغلے لیاقت علي خان د قائد اعظم یو ډیر معتمد ملګرے او ښے لاس پاتے شوے وو نو حالات د هغهٔ په قابو کښے وو۔ او توقع کیدے شوه چه که چرے په هغهٔ مرګ تلوار نهٔ وے کړے نو حالات به ډیر زر سم شوي وو۔ ولے د بده مرغه لیاقت علي خان هم د یو بدبخته

د لاسه شهید کړے شو۔ (۱۶ر اکتوبر ۱۹۵۱ء) ۔

د لیاقت علی خان مرحوم نه پس دا خبره ډیره زر ثابته شوه چه د ملک سیاستدانان په ملک کښے د یوے خوشګوارے سیاسی فضا په نشو نما او وده کښے کامیاب نۀ شول. په مرکز او صوبائی حکومتونوکښے ډله بازئ شروع شوے۔ د ملک سیاسی فضا په شدت سره ابتره شوه۔ د لیاقت علی خان مرحوم په وفات خواجه ناظم الدین د ګورنر جنرلئ د منصب نه دست بردار شو۔ او خپل ځان ئے د وزارت عظمیٰ په عهده فائز کړو۔ او بیا د رواج او روایت مطابق د مسلم لیګ صدر هم شو۔ په دے کښے شک نشته چه په خپله خوخواجه صاحب یو ډیر مخلص نیک او دیانتدار انسان وو۔ ولے هغۀ د خپل جماعت مسلم لیګ په حقله هیڅ څه نیکی او نۀ کړے شوه۔ خواجه صاحب د ۱۷ر اپریل ۱۹۵۳ء پورے د ملک وزیر اعظم وو۔ او د مسلم لیګ صدر وو۔ ولے په خپل صدارت کښے تر اخر وخته ئے خپله مجلس عامله هم مکمل نۀ کړے شوه۔ د خواجه صاحب په دور وزارت کښے د یو نوی دور اغاز اوشو او دا د حکومت په کاروبار او وزارتی سیاست کښے د ګورنر جنرل د مؤثر مداخلت دور وو۔ د مسلم لیګ د مشرانو د ډله بازئ نه ګورنر جنرل ته د مسلم لیګ بے ارزی معلومه شوه۔ او دا خیال ئے اوکړو چه که هغه هر څه کاروائی اوکړی د هغۀ برخلاف به په ملک کښے څه مؤثر احتجاج اُونۀ شی۔ چنانچه په پنجاب کښے د قادیانیانو برخلاف ایجی ټیشن نه پس په مارچ ۱۹۵۳ء کښے ملک غلام محمد، خواجه ناظم الدین په دے خبره مجبور کړو چه هغه دِ په پنجاب کښے د دولتانه وزارت برطرف کړی۔ د ګورنر جنرل دا اقدام بیخی غیرجمهوری وو۔ ځکه چه په صوبائی اسمبلئ کښے اکثریت د دولتانه په طرف وو۔ بیا هم خواجه صاحب په مجبورئ دا اقدام اوچت کړو۔ ولے په دے پسے ډیر زر د خواجه صاحب خپل وارهم راغے۔ په دغه ورځوکښے په بنګال کښے د ژبے مسئله هم راپورته کړے شوه۔ او په ملک کښے د خوراک حالت هم نازک شو۔ خواجه صاحب اګرچه په خپله خو دیانتدار انسان وو۔ ولے د خود غرضه سیاست دانانو قابوکول او مطمئن کول د هغۀ د وس نه بهر خبره وه۔ چنانچه په ملک کښے انتشار وو۔ دغه وجه وه چه ګورنر جنرل د خواجه صاحب وزارت هم برطرف کړو او دا اعلان ئے اوکړو چه خواجه صاحب د غذائی قلت مسئله حل نۀ کړے شوه۔ او دا چه د عوامو ویسا د هغۀ نه پاڅیدلی وه۔ د خواجه صاحب په ځائے محمد علی بوګره د وزارت عظمیٰ د پاره نامزد شو۔

په یو لور که د ګورنر جنرل ملک غلام محمد دا اقدام غیرجمهوری وو۔ نو په بل لور په

قومي پارلیمنټ کښې د واضح اکثریت لرونکي مسلم لیګي ممبرانو روش هم بزدلانه وو.هغوئ ته پکار وو چه دګورنر جنرل د دے اقدام غندنه ئے کړے وے او په خواجه ناظم الدین ئے سردوباره داعتماد اظهار کړے وے.او یا ئے دګورنر جنرل نامزد وزیر اعظم (محمد علي بوګره) د خپل وزیر اعظم په ډول نهٔ وے قبول کړے .ولے لیګي ممبرانو په دے خبره هډو هیڅ غوږ او نهٔ ګرولو.او دائے ثابته کړه چه د دوئ په مخکښے اصول نه بلکه خپل خپل ذاتي مفاد دي.د دے نه پس د وزارتونو د شکست و ریخت یو داسے سلسله شروع شوه چه په دستوري تاریخ کښے به د هغ مثال کم او موندلے شي.

محمد علي بوګرا اګر چه یو مخلص او سرګرم انسان وو.ولے ملک ته چه کوم مسئلے وړاندے وے د هغ د حل کولو د پاره ئے هغومره سیاسي تجربه نهٔ لرله.د دهٔ په وخت کښے په مشرقي پاکستان کښے مسلم لیګ شکست اوموند.او د فضل الحق مرحوم پارټي په اکثریت کښے راغله.لږ ورځ پس په مشرقي پاکستان کښے د سیاسي ابترئ په نتیجه کښے ګورنري راج قائم شو.دغه وخت د دے صوبے ګورنر سکندر مرزا وو.

په ۱۹۵۴ء کښے د پاکستان د دستور سازے اسمبلئ یو څو داسے آئیني اقدامات اوکړل چه په هغ سره دګورنر جنرل په اختیاراتو کښے کمے راتلو.مثلاً د دستور سازے اسمبلئ په ګورنر جنرل دا پابندي اولګوله چه هغه به خپل وزیر اعظم نامزد کولے نهٔ شي.دا قدغن ئے پرے هم کیښود چه آئنده به هغه د اسمبلئ یو داسے ممبر ته د وزارت د تشکیل دعوت ورکوي چه هغهٔ ته په اسمبلئ کښے د واضح اکثریت مرسته هم حاصله وي.دستور سازے اسمبلئ دګورنر جنرل نه د یو وزارت یا یو وزیر د برطرف کولو اختیار هم اخستے وو.دد ے په جواب کښے یو میاشت پس په ۲۴ اکتوبر ګورنر جنرل اسمبلئ او پارلیمنټ (په دواړو هیثیتونو کښے) ختم کړهٔ.که چرے ګورنر جنرل په خپل فرمان کښے زر تر زره د نوي انتخاباتو کولو اعلان کړے وے نو خبره به ګرانه شوي نهٔ وه.ولے د نوي انتخاباتو په باب کښے دغه یقین د نیشتوالي په وجه د دستور سازے اسمبلئ صدر مولوي تمیزالدین خان مرحوم په سندھ چیف کورټ کښے دګورنر جنرل د دے اقدام برخلاف مقدمه داثر کړه.عدالت دګورنر جنرل دا اقدام ناجائز اوګڼلو.او مولوي تمیز الدین خان ئے په خپله عهده (صدر دستور ساز اسمبلئ) باندے بحال کړو.مرکزي حکومت د سندھ چیف کورټ د دے فیصلے برخلاف په فیډرل کورټ کښے اپیل داثر کړو.فیډرل کورټ اګر چه په خاصو حالاتو کښے د دستور سازے د ماتولو اقدام ته جائز اووئیل.ولے ورسره ئے د نوي دستور سازے

د قاشولو هدايت هم اوکړو. دا دستور سازه په ۷ر جولائی سنه ۱۹۵۵ء کښې قائمه شوه.

د وزيراعظم کيدو نه اول محمد علی بوګرا شپږ کاله د ملک نه بهر پاتې شوې وو. هغه په خپله او د هغهٔ ټول وزيران د ګورنر جنرل دلورى نه نامزد شوى وو. په دې وجه هغهٔ په ملک کښې څه خاص اکثريت حاصل نهٔ کړې شو. په خارجه معاملاتو کښې بوګرا وزارت په دې لحاظ سره مشهور دې چه په دغه ورځو کښې پاکستان په دفاعی معاهداتو کښې شامل شو. ښاغلې محمد علی بوګرا د ۱۱ر اګست سنه ۱۹۵۵ء پورې وزيراعظم وو. او هم په دغه ورځې د چودهرى محمد علی د پاره خپل ځائې خالی کړو. چونکه د عوامو او د حکومت د مشرانو ترمينځه څه تعلق او ربط نهٔ وو پاتې شوې. په دې وجه د خواجه ناظم الدين په شان د ښاغلی بوګرا په محرومئ هم چا څه افسوس او نهٔ کړو.

د خواجه ناظم الدين په وزارت کښې ښاغلې سردار عبدالرب نشتر وزير صنعت وو. د خواجه صاحب د وزارت د برطرف کيدو په نتيجه کښې سردار عبدالرب نشتر هم د وزارت نه لرې کړې شو. ولې د محمد علی بوګرا په وزارت کښې نشتر مرحوم د شموليت نه انکار اوکړو. په دې وجه د مرکزى وزير صنعت په عهده ښاغلې عبدالقيوم خان اوټاکلې شو. عبدالقيوم خان په دغه ورځو کښې د صوبه سرحد وزيراعلیٰ وو. د قيوم خان دا وزارت د سنه ۱۹۵۱ء په اخر کښې تشکيل شوې وو. لکه چه وړاندې وئيلې شوی دی په سنه ۱۹۵۱ء کښې د مغربی پاکستان د نورو صوبو په شان په صوبه سرحد کښې هم انتخابات شوی وو. په دې انتخاباتو کښې حد په صورته دهاندلئ او بې قاعدګئ شوى وې. عبدالقيوم خان د ۱۷ر اپريل سنه ۱۹۵۳ء پورې د صوبه سرحد وزيراعلیٰ وو. او هرکله چه هغهٔ ته د مرکزى وزارت صنعت پيشکش اوشو نو هغهٔ د دې نه انکار اوکړو. ولې هرکله چه چارهٔ غاړه شو نو په صوبه سرحد کښې ئې په خپل ځائې سردار عبدالرشيد خان چه په دغه ورځو کښې د صوبې انسپکټر جنرل پوليس وو وزيراعلیٰ اوټاکلو. او خپل يو دوست مرزا شمس الحق ته ئې په کابينه کښې يوه نوې عهده پيدا کړه. او هغه ئې وزير صحت مقرر کړو. دا ټول اقدامات بيخی غير جمهورى او آمرانه وو. ولې د هغه وخت بااقتداره سياست دانانو په دې کښې هيڅ باک نهٔ ګڼلو په دغه ورځو کښې څه رنګ چه د ملک په نورو حصو کښې ابترى وه په صوبه سرحد کښې هم بد حال وو. د اقتدار د خاوندانو له خوا به خپلو سياسى مخالفينو سره ناجائز سلوک کيدلو. خود غرضی او مفاد پرستی د ومره عامه وه چه هيچا ترې مخ نهٔ اړولو.

په اګست سنه ۱۹۵۵ء کښې د ملک غلام محمد په ځائې سکندر مرزا ګورنر جنرل شو.

د وزارت عظمٰی عهده د چوهدری محمد علی سره وه. د چوهدری محمد علی دور وزارت په دے وجه د ستائینے وړ دے چه هم د دهٔ په دورِ وزارت کښے د پاکستان نوے آئین چه تر دغه وخته پورے د سیاست دانانو د اویزشونو او سازشونو په وجه نهٔ وو جوړ شوے. تکمیل ته اورسیدهٔ. د چودهری محمد علی د وزارت بله کارنامه د وحدت مغربي پاکستان قیام دے. په ۱۴ر اکتوبر ۱۹۵۵ء د وحدت مغربي پاکستان د قیام اعلان اوشو او د صوبه سرحد، مغربي پنجاب، سنده او بلوچستان ځلور واړه صوبے په دے وحدت کښے مدغمے کړے شوے. مشتاق احمد گورماني د دے لوئے صوبے گورنر او ډاکټر خان صاحب چه په هغه ورځو کښے د ری پبلکن پارټئ مشر وو. د وحدت مغربي پاکستان وړومبے وزیراعظم او ټاکلے شو. ولے د وحدت په قیام هم د سیاست دانانو اختلافات ختم نهٔ شول بلکه په دے کښے نور زیاتے راغے.

په ۲۳ر مارچ ۱۹۵۶ء د پاکستان نوے آئین منظور شو. د نوی آئین له مخه پاکستان یو اسلامي جمهوریه شوه. او سکندر مرزا د دے وړومبے صدر او ټاکلے شو.

د صدارت حاصلولو نه پس سکندر مرزا په ډیرے سرگرمئ سره په سیاسیاتو کښے مداخلت شروع کړو. او دا ئے اراده اوکړه چه په مجلس آئین ساز کښے د خپلو مرستیالو یوه مضبوطه ډله پیدا کړی. (د ری پبلکن پارټئ په نوم چه د اقتدار د خواهشمندو سیاست دانانو کومه ډله قائمه شوی وه. د هغے په شا هم د سکندر مرزا لاس وو.) په دے غرض هغهٔ د ستمبر ۱۹۵۶ء نه د اکتوبر ۱۹۵۸ء پورے درے وزیراعظمان بدل را بدل کړل.

په ۱۲ر ستمبر ۱۹۵۶ء د چودهری محمد علی په ځائے حسین شهید سهروردی وزیراعظم شو. د دهٔ په وزیراعظم کیدو دا توقع پیدا شوه چه دے به یو مضبوط او باوقاره وزیراعظم ثابت شی. ځکه چه سهروردی مرحوم د یوے مضبوطے ډلے عوامی لیگ مشر او تحریک پاکستان د صف اول په مشرانو کښے شامل وو. ولے د وزیراعظم کیدو نه پس د سهروردی رویه بدله شوه. او د هغهٔ خپل زاړهٔ ملگری هم د هغهٔ نه گِله من شول. د سهروردی وزارت د عوامی لیگ او ری پبلکن پارټئ مخلوط وزارت وو. د ری پبلکن پارټئ د خوشنودئ د حصول په غرض سهروردی په پنجاب کښے د پارلیمانی حکومت د برطرف کولو منظوری ورکړه. د متروکه جائیداد په الاټ منټونو کښے د بے قاعدگیو تحقیقات ئے بند کړو. د وړومبئ پنځه کلیزے منصوبے نه ئے د زرعی اصلاحاتو منصوبه لرے کړه. د دهٔ په وخت کښے عوامی لیگیانو په هره جائزه ناجائزه طریقه فائدے حاصلے کړے.

ولے د ری پبلکن پارټۍ او مسټر سهروردی تعلقات تر ډیرے مودے خوشګوار پاتے نهٔ شول ـ ځکه چه ری پبلکن پارټي به په هره معامله کښے د سکندر مرزا نه هدایات او رهنمائي حاصلوله ـ د دے نتیجه دا شوه چه ری پبلکن پارټۍ د سهروردی د حمایت او مرستے نه لاس اوچت کړو ـ او د دے په نتیجه کښے سهروردی مرحوم په ۱۸ ، اکتوبر ۱۹۵۷ء کښے د وزارت عظمیٰ نه مستعفی شو ـ

د مسټر سهروردی نه پس مسلم لیګی لیډر آئی ـ آئی چندریګر په ۱۸ اکتوبر ۱۹۵۷ء کښے وزیر اعظم شو ـ او د ۱۶ ، دسمبر ۱۹۵۷ء پورے په دے عهده فائز وو ـ مسټر چندریګر د یو سیاست دان په نسبت د یو قانون دان په حیثیت کښے زیات شهرت لرلو ـ دده په کابینه کښے هم هغه ری پبلکن شامل وو ـ کوم چه مسټر سهروردی په استعفیٰ ورکولو مجبور کړے وو ـ او هم د دے پارټۍ د رویے په نتیجه کښے چندریګر هم په ۱۶ ، دسمبر ۱۹۵۷ء په استعفیٰ ورکولو مجبور شو ـ

د مسټر چندریګر نه پس ملک فیروز خان نون په ۱۶ ، دسمبر ۱۹۵۷ء وزیر اعظم شو ـ دده په کابینه کښے د عوامی لیګیانو او ری پبلکن پارټۍ اکثریت وو ـ بلکه د ملک نون وزارت په اصل کښے د عوامی لیګیانو وو ـ په دے وزارت کښے په مشرقی پاکستان کښے د سمګلنګ برخلاف د سختو اقداماتو کولو پروګرام باندے عمل ملتوی کړے شو ـ هم په دغه دور کښے د عطاء الرحمان د وزارت د برطرف کولو نه پس د مشرقی پاکستان ګورنر مسټر فضل الحق هم برطرف کړے شو ـ په مغربی پاکستان کښے هم ډیر افسران د انتقام نښانه شول ـ او د دے ټولو داندلونو باوجود چه ملک نون خپل اکثریت یقینی او قطعی نهٔ کړے شو ـ نو هغهٔ د اتیا ممبرانو په ایوان کښے شپږ ویشت ممبران په خپله د بینه کښے شامل کړل ـ او هر کله چه د سکندر مرزا سرپرستۍ هم د ملک نون حیثیت مضبوط او مستحکم نهٔ کړے شو ـ نو د دے نه پس په ۷ ، اکتوبر ۱۹۵۸ء د ملک فیروز خان نون وزارت هم برطرف کړے شو ـ او د صدر سکندر مرزا له خوا د پارلیمانی نظام د منسوخۍ او د مارشل لاء د قیام اعلان اوشو ـ

لکه چه اوو ټلے شول د لیاقت علی خان مرحوم نه پس په مرکزی او صوبائی حکومتونو کښے د اقتدار د خاوندانو ترمینځه ډله بازۍ شروع شوے ـ د مسلم لیګ ، عوامی لیګ او ری پبلکن ډلو ترمینځه شدید سیاسی اختلافات وو ـ او د دے په نتیجه کښے د ملک سیاسی فضا ډیره ابتره وه ـ د اقتدار خاوندانو د خپل اقتدار د حفاظت او خپلو دوستانو

مرستیالو ته د فائدے رسولو په غرض د یو بل سره په مشت وګریوانئ کښے لګیا وو۔ هرچا قامی مفاد شاته اوخپل ذاتی مفاد مخکښے کړے وو۔ بے شکه چه په ملک کښے دیانتدار اومخلص سیاستدانان هم موجود وو۔ ولے د هغوئ شمیر د ومره کم وو چه د بے سیلاب ته بنداچول د هغوئ د وس نه بهرخبره وه۔ داځاهوده چه په داسے ابتره سیاسی فضا کښے اخلاقی او تمدنی ترقی ناممکنه وی۔ په ملک کښے د سمګلنګ، غل بازارئ او ذخیره اندوزئ لعنتونه عام شوی وو۔ په مغربی پاکستان کښے ډیره قابل کاشت زمکه موجوده وه۔ ولے لویو لویو زمیندارانو په هغې باندے د قبضے کولو اراده لرله۔ او د دے د پاره به په خپلو کښے جنګیدل۔ د اولس د خوراک د پاره به د بهر ملکونو نه غله راغونبتلے شوه۔ او د ملک زر مبادله به پرے ختمیدله۔سیاسی استحکام ختم شوے وو۔ په سن ۱۹۵۵ء کښے سمګلنګ دومره عام شوے وو چه د ملک د پیداوار غالبه حصه به په غرګنده د ملک نه بهر وتله۔ او د دے په وجه په ملک کښے د قحط غونده حالات پیدا شوی وو۔ د ملک سیاسی فضا تر دے حده ګنده شوی وه چه په مئ سن ۱۹۵۸ء کښے ډاکټر خان صاحب د مغربی پاکستان (سابق وزیراعظم) د یو جنونی د لاسه په خپله بنګله کښے شهید کړے شو۔ هم د غه شان یو واقعه په مشرقی پاکستان کښے هم اوشوه۔ یعنی په ستمبر سن ۱۹۵۸ء کښے د صوبائی اسمبلئ د اجلاس په موقع په اسمبلئ کښے د حزب اقتدار او حزب اختلاف په مینځ کښے داسے هنګامه اوشوه چه د هغې په نتیجه کښے د اسمبلئ ډپټی سپیکر (جناب شاهد علی) چه په دے موقع ئے د اجلاس صدارت کولو سخت ژوبل شو۔ او د دے زخمونو نه په حق اورسید۔ غرض د قانون بے احترامی په ملک کښے عامه وه۔ او په دے کارونو د پاکستان وقار په بیرونی ملکونو کښے ډیر کم شوے وو۔

دا خبره ډیره عجیبه او ورسره افسوسناکه هم ده چه هغه قام چه د ازادئ جنګ ئے ګټلے وو۔ د ازادی نه پس په داسے ناوړه کارونو سرشو۔ چه هغه د ملکی مفادو نه سراسر خلاف وو۔ په اصل کښے د دے ټولو مصیبتونو ذمه وار هغه خلق وو چه د چا په لاس کښے چه د اقتدار واګے وے۔ ترکومه حده چه د عوامو تعلق وو هغه د وړاندے په شان د غه وخت هم د خپل ملک خدمت ته تیار او د ملک د حفاظت په لړکښے هرے قربانئ ته اماده وو۔ ولے د مرکز او صوبائی حکومتونو ذمه وارو افرادو به ارادتاً داسے مسائل پیدا کول ۔ چه د هغې نه به جګړے پیدا کیدلے۔ او د ملک سیاسی استحکام ته به پرے ډیر نقصان رسیده و۔ دا حالات په ۸ ر اکتوبر د مارشل لاء په نفاذ ختم شو۔

لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی په ۸ ر اکتوبر سن ۱۹۵۸ء صدر سکندر مرزا د ملک

پارلیمانی نظام معطل اود مارشل لاء نفاذ اعلان ئے اوکړو۔ او جنرل محمد ایوب خان د مارشل لاء ناظم اعلیٰ او ټاکلے شو۔

# د مارشل لاء داسبابو ذکر په دے الفاظو کښے شوے وو:-

" د افرادو هغه ټولی چه پاکستان ئے د تباهئ غاړے ته رسولے دے۔ هغه به انتخابات هم د خپلو اغراضو او مقاصدو د پاره استعمالوی۔ هرکله چه دا خلق بیا منتخب شی نو هم د هغه طریقو نه به کار اخلی دکومو په وجه چه د جمهوریت نه یو درد ناک مذاق جوړ شوے دے۔ او د ملک د موجوده وسیع مایوسئ اصلی سبب هم دا خلق دی۔ داانتخابات به هیچرے ازادنه او منصفانه او نۀ شی۔ او نه به د دے نه زموږ په مشکلاتو کښے څه اسانتیا راشی۔ زموږ په خارجی پالیسئ باندے په بے شعورئ او غیر ذمه وارئ سره اعتراضونه کیږی۔ او دا اعتراضونه اکثر هغه خلق کوی کوم چه د دے پالیسئ ذمه وار وو۔"

په ۸، اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء د مارشل لاء ناظم اعلیٰ جنرل محمد ایوب خان دا اووئیل:-

" زموږ اولس فطرتاً نیک او صابر دے۔ دوئ محب وطن او روادار دی۔ که چرے د دوئ رهنمائی اوکړے شی نو دوئ د لوړتیا انتها ته رسیدلے شی۔ ما ته په صفا لفظونو کښے دا ظاهرول پکار دی۔ چه زموږ اصلی مقصد د جمهوریت بحال کول دی۔ داسے جمهوریت چه په هغے زموږ عوام پوهیدلے شی۔ او د هغ نه کار اخستلے شی۔ زموږ د وړاندے څنے مسئلے داسے دی چه هغه سمدستی حل کول غواړی۔ او څنے کشالے داسے دی چه د هغ د حل کولو د پاره د وخت ضرورت دے۔ زۀ تاسو ته دا وایم چه سخت محنت اوکړئ۔ او د خپل طرف نه په کوشش کښے هیڅ کسر مۀ پرېږدئ۔ دا یو داسے دور دے چه په دے کښے زموږ د ملک تعمیر روان دے۔ او تعمیر په هغه صورت کښے ممکن کیدے شی چه ټول خلق د هغ د پاره کار اوکړی۔ په اخر کښے دوئ دا اووئیل چه دا انتهائی قدم ځکه اخستے شوے دے چه پاکستان مضبوط او محفوظ شی۔"

دا انقلاب په داسے طریقه شوے وو چه یو څاڅکے وینه په کښے توے نۀ شوه۔ یوه ګولئ په کښے او نۀ چلیده۔ چا ته پهانسی ور نۀ کړے شوه۔ په سیاسی وجوهاتو څوک ګرفتار نۀ کړے شو۔ د عام اولس په امروزه ژوند کښے څه فرق رانغلو۔ غرض دا انقلاب د انقلابانو په تاریخ کښے د خپل نوعیت یو واحد انقلاب وو۔ چه په ډیره پرامن طریقه شوے وو۔

دانقلاب نه پس دا خبره معلومه شوه چه د ملک په سیاسی انتشار کښې د هغه وخت صدر سکندر مرزا د ټولو نه زیات ذمه وار وو - دغه وجه وه چه هغهٔ په ۲۷، اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء خپله استعفیٰ پیش کړه - او هم په دغه ورځ انقلابي حکومت ته هر کلے او وئیل. څکه چه انقلابي حکومت د سماج د دشمنانو برخلاف سخت اقدامات شروع کړل - او د دے نتیجه دا شوه چه د ژوند په هر اړخ کښې یو نوے جوش او ولوله پیدا شوه - په لږو ورځو کښې د معاشرے د ډیرو خرابیو درستي اوشوه - ولے دا حالات تر ډیرے مودے قائم پاتے نهٔ شول - او د دے وجه دا وه چه د فوځي حکومت له خوا د غیر ضروری تم تړاخ او دبکو دړکو د نیشتوالی له کبله د مارشل لاء سهم د زړونو نه لرے شو - او ورو ورو سماج دشمن عناصر بیا را اولتیدل - به هر حال انقلابي حکومت په ملک کښې څه د رے نیم کاله قائم وو - په دے دوران کښې د صدر محمد ایوب خان له خوا د ژوند په مختلفو اړخونو کښې د اصلاحاتو مهم شروع وو - په دے عرصه کښې چه د ملک د بهترئ په لړ کښې کوم کارونه شوی دی - په هغو کښې د یو څو ډیر اهمو کارنامو ډیر مختصر ذکر کول به بے ځایه نهٔ وی.

په مغربي پاکستان کښې د زرعي اصلاحاتو نفاذ د انقلابي حکومت یو جرأت مندانه کارنامه ده - د دے اصلاحاتو له مخه حکومت دا فیصله اوکړه چه د پنځه سوه ایکړه نهری زمکے نه او یا د یو زر ایکړه بارانی زمکے نه به زیاته د کر زمکه د چا سره نهٔ وی - د دے مقدار نه زیاتي هر څومره زمکے حکومت د زمیندارانو نه په مناسب قیمت واخستلے - او هغه ئے کاشتکارانو او دهقانانو ته په مناسب قیمت ورکړلے - او هغه څوک چه کسب ئے کرکرونده وو ولے د زمکے خاوندان نهٔ وو - د خپلے زمکے خاوندان شول - او دغه شان د ملک په زرعي پیداوار کښې د قدر وړ اضافه اوشوه - د زرعي اصلاحاتو نفاذ یو داسے انقلابي کارنامه ده چه دوراندینو سیاست دانانو یو حکومت هم د هغ نفاذ ته غاړه نهٔ کیښودله - د زرعي اصلاحاتو نه علاوه د مهاجرینو د آبادکارئ مسئلے د تیرو حکومتونو په وخت کښې د سیاسی اختلافاتو په وجه یو نازک شکل اختیار کړے وو - ولے انقلابي حکومت د دے اهمے معاملے ته خاصه توجه ورکړه - او د مهاجرینو د آبادکارئ مسئله ئے ختم کړه - او دغه شان د ملکی او مهاجر تمیز ختم شو -

انقلابي حکومت د قومي تعمیر په لړ کښې د تعلیم مسئلے ته په نورو مسائیلو فوقیت ورکړو. او په دے غرض ئے یو تعلیمی کمیشن مقرر کړو - د دے کمیشن د ملک د تعلیمی نظام جاج واخست او بیا ئے د خپل طرف نه د تعلیم د هرے درج په حقله خپل سفارشات پیش کړل - د دے سفارشاتو په رڼا کښې په ملک کښې نوے نظام تعلیم جاری شو - د نوی نظام تعلیم مقصد

دا دے چه قومی کردار ته ترقی ورکړے شی۔ د قام په بچو کښے دقامی اتحاد او خدمت وطن جذبه پیدا کړے شی۔ او د خلقو په نظر کښے د محنت مزدورئ قدر او اهمیت زیات کړے شی۔

د سنه ۱۹۵۸ء انقلاب ملک ته سیاسی استحکام او بخښلو۔ او د دے په نتیجه کښے د پاکستان وقار په بیرونی دنیا کښے بیا سر دوباره قائم شو۔ د ملک د تعمیر او ترقئ په منصوبو پوړه تیزئ عمل شروع شو۔ د ذخیره اندوزئ او سمګلنګ بندیز او شو۔ په ملک کښے د معاشی استحکام پیدا کولو منظم کوششونه شروع شول۔ ملک ته یو مضبوط نظم و نسق ورکړے شو دا داسے اقدامات وو چه د ملک د ودانئ په لړ کښے لابدی او لازمی وو۔ د غه وجه وه چه د اکتوبر انقلاب یو معالجاتی عمل او ګڼلے شو۔

غرض په دے کښے شک نشته چه که چرے د اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء انقلاب نۀ وے شوے نو دا یقینی وه چه ملک به د اقتدار د خواهشمندو ترمینځه د جنګونو او سازشونو او د علاقائی، نسلی، او لسانی تنازعو او تعصباتو په نتیجه کښے نیم ژوبلے شوے وو۔ د غه وجه وه چه د مارشل لاء په نفاذ سره د سکون و اطمینان فضا پیدا شوه۔ د دے اطمینان یو سبب خو دا وو چه دا انقلاب ډیر پرامن وو۔ او بل دا چه دا انقلاب مشرانو په صفا لفظونو کښے دا وعده کړی وه چه د مارشل لاء دور عارضی دے۔ هم دغه احساس وو چه د ملک عوام ئے د ملک د ودانئ کوششونو ته اماده کړل۔ او د حکومت او عوامو ترمینځه یو ژوره ذهنی رابطه پیدا شوه۔ د داسے رابطے مثال د انقلاب نه په وړاندینی دور کښے نۀ شی موندلے۔

د سنه ۱۹۵۸ء د فوځی انقلاب په لړ کښے به دا بے ځایه نۀ وی چه د دے انقلاب د قائد حالات هم په لنډ ډول بیان کړے شی۔

د انقلاب قائد فیلډ مارشل محمد ایوب خان د سابق صوبه سرحد په ضلع هزاره کښے پیدا شوے دے۔ په پښتنو کښے د ترین قبیلے او په دے قبیله کښے د بټی خیلو د ځانګے سره تعلق لری۔ په مسلم یونیورسټئ علی ګړه کښے د ګریجویټ کیدو نه پس د فوځی تعلیم و تربیت د حصول په غرض په رائل ملټری کالج سینډهرسټ کښے داخل شو۔ او په سنه ۱۹۲۸ء کښے ئے کمیشن حاصل کړو۔ په دوئم جنګ عظیم کښے د برما په محاذ د یو پیدل بټالین کمان ئے اوکړو۔ په سنه ۱۹۴۷ء کښے کرنل او په دے پسے زر تر زره د بریګیډیر په عهده ترقی ورکړے شوه۔ په سنه ۱۹۴۸ء کښے میجر جنرل او د مشرقی پاکستان د فوځونو جنرل آفیسر کمانډنګ مقرر شو۔

د جي - او - سي په حیثیت جنرل محمد ایوب خان د صوبې د تحفظ په لړ کښې مناسب تدابیر اختیار کړل- په فوځ کښې ئې یو نوے جوش پیدا کړو- او د ملک د حفاظت د پاره ئې تیار او ساتلو- په کومه زمانه کښې چه د مشرقي پاکستان د حفاظت او دفاع ذمه واري دوئ ته ور په غاړه شوې وه- د غه وخت دوئ د صوبې په معاشرتي، اقتصادي او سیاسي مسائیلو هم نظر لرلو- دوئ د خلقو د مشکلاتو نه ځان خبر کړو- او د هغې په حل کولو کښې ئې د حکومت سره مرسته اوکړه- د خپلو ښو اخلاقو او د خدمت د احساس په وجه دوئ په دے صوبه کښې ډیر زر مقبولیت بیا مونده ؤ-

د دے خدماتو د اعتراف په ډول په ۱۷ ر جنوري سنه ۱۹۵۱ء د پاکستان د فوځونو د کماندار اعلی په ممتازه عهده او تاکلے شو- د کماندار اعلی په حیثیت دوئ د فوځ په هره ځانګه کښې اعتماد قائم کړو- په حقیقت کښې د پاکستان موجوده فوځ چه د هغې د قابلیت اعتراف ټوله دنیا کوي- د جنرل محمد ایوب خان د بے پناه کوششونو تخلیق دے- په ۸ ر اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء د هغه وخت د صدر سکندر مرزا له خوا چه مارشل لاء قائم شو نو د غه وخت د مارشل لاء ناظم اعلی او د پاکستاني فوځونو د سپریم کمانډر په عهده او ټاکلے شو- او په ۲۷ ر اکتوبر سنه ۱۹۵۸ء د سکندر مرزا د استعفی په نتیجه کښې د انقلابي حکومت صدر شو-

لکه چه وړاندے وئیلے شوي دي صدر محمد ایوب خان د مارشل لاء په اغاز کښې زر تر زره د جمهوریت د بحال کولو وعده کړې وه- د یو داسے جمهوریت چه د ملک اولس په هغې پو هیدلے او کار ترینه اخستلے شي- دا وعده هغوی ډیره زر پوره کړه- او داسے مثالونه به ډیر کم او موندلے شي- چه د صدر ایوب په شان به چا د خپل اقتدار عرصه په خپله مرضئ لنډه کړې او د اقتدار واګے به ئې عوامو ته سپارلو باندے اماده ګي ظاهره کړې وي- په دے لړ کښې صدر محمد ایوب خان د ملک د حالاتو او تقاضو پیش نظر ملک ته یو قابل عمل آئین ورکړو- او د دے نوی آئین ماتحت په اپریل سنه ۱۹۶۲ء کښې د قومي او صوبائي اسمبلیانو د پاره د بنیادي جمهوریتونو د ممبرانو په ذریعه انتخابات اوشول- او په ۸ ر جون سنه ۱۹۶۲ء د قومي اسمبلئ د وړومبي اجلاس په موقع د مارشل لاء د لرے کیدو او جمهوریت د بحال کیدو اعلان اوشو- او د نوی آئین مطابق په دواړو صوبو او مرکز کښې آئیني حکومتونه تشکیل شول- د نوی آئین ماتحت چه کوم حکومت تشکیل شوے دے د هغې صدر هم محمد ایوب خان دے-

نوی حکومت د صدر ایوب په قیادت کښې د دوؤ دوه نیمو کالو په مختصره عرصه کښې د ملک د تعمیر و ترقۍ په لړکښې د ستائینې وړ ډیر کارونه اوکړل ۔ د صدر ایوب خان د دے شپږ کلیز دور قیادت تفصیلی کارنامے بیانول د دے کتاب د موضوع نه بهر دی ۔ دا به د پاکستان د تاریخ یو راتلونکے مؤرخ بیانوی۔ په دے موقع به صرف دومره وئیل بے ځایه نۀ وی چه په دے مختصره عرصه کښې نۀ صرف دا چه ملک ته داخلی استحکام حاصل شو ۔او د ملک د تعمیر او ترقۍ منصوبے په تیزۍ او تندۍ تکمیل ته اورسیدلے بلکه په دے دورکښې د پاکستان خارجه پالیسی هم یو ازاد او باوقار شکل اختیار کړو۔ د خپل عظیم ګاونډی ملک کمیونسټ چین سره پاکستان په فضائی او تجارتی معاهدوکښې شامل شو ۔ د دوی ترمینځه د حد بندۍ معاهده هم اوشوه ۔ د حد بندۍ یو معاهده د ایران سره هم سرته اورسیده ۔ د افغانستان سره تجارتی او سفارتی تعلقات هم په دغه دورکښې بیا سر دوباره قائم شول ۔ د مشرق وسطیٰ د عرب ملکونو سره د پاکستان تعلقات خوشګوار شول ۔ د روس سره چه د پاکستان یو بل عظیم ګاونډی ملک دے هم تجارتی او فضائی معاهدے اوشوے ۔ دغه شان د نورو اکثرو سوشلسټ ملکونو سره هم د پاکستان تجارتی او اقتصادی معاهدے سرته اورسیدلے ۔ په دغه دورکښې د پاکستان ایران او ترکی ترمینځه د علاقائی تعاون معاهده اوشوه ۔ چه په معاهده استنبول مشهوره ده ۔ د صدر ایوب د حکومت دا یو داسے کارنامه ده چه د ډیر ویاړ قابله ده ۔ د عظیم اسلامی ملک انډونیشیا او پاکستان ترمینځه هم تعلقات په اخلاص و محبت قائم دی۔ او توقع کیدے شی چه د دے دواړو ملکونو ترمینځه به هم د علاقائی تعاون معاهده زر تر زره اجرا شی ۔ د خپلے ازادے او باوقاره خارجی پالیسۍ په نتیجه کښې پاکستان د افروایشیائی ملکونو په ورور ولۍ کښې هم یو جوت مقام پیدا کړو ۔ غرض دا چه د ملک د تعمیر په هر اړخ کښې یو محسوسه او څرګنده ترقی اوشوه ۔ او روانه ده کیږی ۔

لکه چه اووئیلے شول د نوی آئین د نفاذ سره د جمهوریت په بحال کیدو دا ضروری شوه چه د ملکی پارلیمنټ د ننه د ممبرانو یوه مضبوطه ډله د حکومت په مرسته ولاړه وی ۔ او په ملک کښې دِ هم د عوامو یو غالبه برخه د حکومت د پالیسیګو مرستے او حمایت ته تیاره وی ۔ په دے لړکښې د نوی آئین په نفاذ سره ملک کښې بیا سیاسی سرګرمۍ شروع شوے ۔ په ملک کښې چه کومے زړے سیاسی پارټۍ وے هغو د نوی آئین سره نظریاتی اختلاف څرګند کړو ۔ په دے بنا د حکومت سره د مرستے او تعاون په غرض یوه نوی سیاسی پارټۍ

دکنونشن مسلم لیگ په نامه تشکیل شوه. او صدر محمد ایوب خان هم په دے پارټۍ کښې د شمولیت اعلان اوکړو. او ددے پارټۍ صدر او ټاکلے شو.

د سنه ۱۹۶۲ء د آئین له مخه د صدارت، قومي او صوبائي اسمبلیا نو معیاد د جون سنه ۱۹۶۵ء پورے ختمیدونکے وو. په دے وجه د سنه ۱۹۶۴ء په اغاز کښې د مذکوره ادارو د انتخاب تابیا شروع شوه. په دے لړ کښې په ۱۷، مارچ سنه ۱۹۶۴ء د صدارت او قومي او صوبائي اسمبلیانو د انتخاب د پاره انتخابي کالج قانون پاس شو. او د بنیادي جمهوریتونو ممبران ددے ادارو د انتخاب د پاره رائے دهندګان اوګڼلے شول. ددے نه پس د بنیادي جمهوریتونو او د نورو انتخاباتو د انعقاد او انتظام په غرض یو با اختیاره ازاد الیکشن کمیشن قائم شو. او د ملک په دوارو حصو کښې د بالغ رائے دهندګانو فهرستونه مکمل شول. او په نومبر سنه ۱۹۶۴ء کښې د ملک په دوارو حصو کښې کم و زیات د څلور نیم کروړه بالغ رائے دهندګانو په ذریعه د بنیادي جمهوریتونو اتیا زره ممبران منتخب شول. د بنیادي جمهوریتونو دا انتخاب په ډیره ازاده او منصفانه طریقه سر ته اورسیدل. او د پاکستان د انتخاباتو په تاریخ کښې دا اول مثال وو چه د ملک عوامو په کښې په ډیر جوش وخروش او مینه حصه واخستله.

د بنیادي جمهوریتونو د انتخاباتو د تکمیل نه پس د صدارت د انتخاب د پاره تیارۍ شروع شوے. او ددے د پاره ۲، جنوري سنه ۱۹۶۵ء دا انتخاب ورځ مقرره شوه. هسے په سرخود صدارت امیدواران څلور وو. ولے په حقیقت کښې اصلي مقابله د صدر محمد ایوب او مادر ملت محترمه فاطمه جناح په مینځ کښې وه. صدر محمد ایوب خان دکنونشن مسلم لیګ د لورې نه د صدارت د پاره نامزد شوے وو. او محترمه فاطمه جناح د متحده حزب اختلاف (چه په پنځو سیاسي جماعتونو یعنې جماعت اسلامي، کونسل مسلم لیګ، عوامي لیګ، نظام اسلام او نیشنل عوامي پارټۍ مشتمل وو.) د لورې نه د صدارت د پاره نامزد وه.

د انتخاب نه وړاندے دوارو ډلو (حزب اختلاف و حزب اقتدار) د خپلے خپلے نظریے او منشور په اشاعت کښې د هرے ممکنے ذریعے نه کار واخست. او د عوامو د اعتماد حاصلولو په یو کوشش کښې هم کمے او نۀ کړو. د صدارت دا انتخاب د دوؤ شخصیتونو ترمینځه انتخاب نۀ وو. بلکه دا د حکومت په مقله په دوؤ نظریو کښې د یو انتخاب کول وو. او چونکه د پاکستان دمستقبل د پاره ئے انتهائي اهمیت لرلو. نو له دے کبله په دے انتخاب کښې د ملک د هرمکتب خیال و فکر خلقو خپله مینه او دلچسپي ظاهره کړه. په دے موقع دا خبره هم د یادولو وړ ده چه د صدر ایوب حکومت په اول ځل پاکستاني حکومت ته دا موقع ورکړه

چه دوئ په ازادانه طريقه د خپلے خوښے او غورے صدر د ځان د پاره منتخب کړی۔او په دے کارنامے د صدر ايوب حکومت چه هر څومره و ياړ اوکړی نو هغه به بے ځايه نۀ وی۔

لکه چه اووئيلے شول د صدارت اميدوارانو او د هغوی مرستيالو د خپلو خپلو نظريو په اشاعت کښے پوره پوره وس اوکړو۔ د ملک په دواړو حصو کښے د صدارتی تعارفی جلسو نه علاوه عوامی جلسے هم په ډيره لويه پيمانه اوشوے چه په هغوکښے عوام د زرګونو او په بعضے ځايونوکښے د لکونو په شمير شامل شول۔ او دا وئيل به مبالغه نۀ وی چه د پاکستان د تحريک نه پس دا د صدارتی انتخاب دويم موقع وه۔ چه پاکستانی عواموپه کښے په ډير جوش و خروش اوليوالتيا حصه اخستلی ده۔ چونکه انتخابی اداره د بنيادی جمهوريتونو ممبران وو۔ او د ملک د مستقبل فيصله د دوئ په لاس کښے وه۔ نو په دے سبب دواړو صدارتی اميدوارانو او د هغوی مرستيالو به هم د دے ممبرانو نه د پاکستان د استحکام او وسيع مفادو پيش نظر د درستے او منصفانه فيصلے اپيلونه کول۔ په دے ډول د بنيادی جمهوريتونو ممبرانو ته د دواړو نظريو په حقله پوره پوره معلومات حاصل شوی او په دے نظريوکښے ورله د خپل فهم و فکر مطابق د يوے نظريے په انتخاب کښے پوره پوره اسانی پيدا شوی وه۔ په دے لړکښے چه ښاغلی محمد ايوب خان په خپل مياشتنی تقرير کښے په ۲ جنوری ۱۹۶۵ء د بنيادی جمهوريتونو ممبرانو ته کوم اپيل کړے وو۔ د هغ نه چونکه د دواړو نظريو په حقله پوره پوره وضاحت کيږی۔ په دے بنا به دلته هغه په لنډ ډول بيانول بے ځايه نۀ وی۔ په دے غرض چه ښاغلی لوستونکی هم د تصوير دواړه اړخونه څرګند اووينی۔

## ښاغلی صدر محمد ايوب خان د بنيادی جمهوريت ممبرانو ته په خپل تقرير کښے دا اووئيل:-

"د سبا ته (۲ جنوری ۱۹۶۵ء) دا تو بجو نه پس چه هره يوه لمحه تيريږی هغه به زمونږ په تاريخ کښے د يو اهمے فيصلے لمحه وی۔ (يعنی) سبا ته (۲ جنوری) به دانتخابی ادارے ممبران د عوامو د خواهش مطابق د پاکستان د صدر د انتخاب په غرض خپله رائے څرګندوی۔ دا انتخابی اداره د ممبرانو په حيثيت کښے چه تاسو څه فيصله اوکړئ په هغ به زمونږ د ترقئ عمارت اودروے شی۔ستاسو دا فيصله به د پاکستان د عوامو د مستقبل تعين کوی۔ زۀ يو ځل تاسو ته بيا دا وايم چه ستاسو دوړاندے د دوو شخصيتونو

ترمینځه د یو شخصیت انتخاب کول نه دی . بلکه دژوند په دوو مختلفو نظریوکښې د یو نظریې غوره کول وی . تاسو ته دا خبره تر اوسه پورې په ښه ډ شان معلومه شوی ده چه دواړه صدارتی امید واران دکوموکومو اصولو نماښندګی کوی . دواړو امیدوارانو د عوامو سره د رابطې په مهم کښې او د انتخابی ادارې د ممبرانو سره په خاصو ملاقاتونو کښې خپلې خپلې نظرېې څرګندې کړی دی . عوامو چه کومه درنه ذمه واری تاسو ته سپارلی ده . د هغ د پوره کولو وخت اوس راغلې دے . زه ستاسو د وړاندے د دواړو امیدوارانو د هغه نظریو چه هغوی ئې نماښندګی کوی . په لنډ ډول په صفا لفظونو کښې څه لږ وضاحت کول غواړم .

متحده حزب اختلاف او د دوئ نامزد امیدوار په مبینه طور په ملک کښې د ازادئ او جمهوریت د قیام د پاره د تاسو نه مرسته غواړی . د دوئ دا خیال دے چه دوئ به دا مقصد د پارلیمانی نظام حکومت په ذریعه حاصل کړے شی . په متحده حزب اختلاف کښې پنځه سیاسی جماعتونه چه هر یو جماعت ځان له خپله نظریه او پروګرام لری شامل دی . دوئ یو نوو (۹) نکاتی پروګرام جوړ کړے او د انتخاب د مقابلې د پاره په خپلو کښې متحد شوی دی . دوئ دا وائی چه په تیرو شپږو کالو کښې ملک ته چه کوم سیاسی او اقتصادی استحکام حاصل شوے دے . هغه پائیدار نهٔ دے . ځکه چه د دے انحصار په یو فرد واحد دے . دوئ دا هم وائی چه عوام براهِ راست د خپلې رائې اظهار نهٔ شی کولے . او په تیرو شپږو کالو کښې ملک په اصلی او حقیقی رنګ کښې هیڅ څه ترقی نهٔ ده کړی .

د حزب اختلاف دا وینا هم ده چه په ملک کښې دولتمند زیات دولتمند او غریب نور هم غریب شو . او دا چه دولت صرف د یو څو کسانو لاس ته راغونډ شوے دے . او د ژوند د ضروریاتو نرخونه دومره اوچت شوی دی چه د عوامو د وس نه بهر دی ولے دا یو حقیقت دے چه په دے ملک کښې په اول ځل دا سے عام انتخابات کیږی چه په هغ کښې حزب اختلاف ته پوره پوره ازادی حاصله ده . او هم د دے ازادئ په بنا هغوی په حکومت او آئین اعتراضونه او حملې کوی . او دا یو حقیقت دے چه د ملک د بالغ اولس نه په سلو کښې اتیا تنو په عامو انتخاباتو کښې حصه اخستې ده . او دا د دے خبرے یو څرګند ثبوت دے چه په ملک کښې نه صرف مکمله ازادی ده بلکه مکمل جمهوریت هم موجود دے . دا هم د هغه عوام وی چه د هغه فیصله کوونکی دی چه د ملک انتظام د چا ته اوسپارلے شی او

دا دِ څه رنګ او چلولے شي۔ تاسو خلق د عوامو په براه راست ووټونو منتخب شوی یئ۔

پارلیمانی نظام حکومت چه متحده حزب اختلاف ئے په دے ملک کښې قائمول غواړی (د دے نه وړاندے) څو کاله په دے ملک کښې قائم وو۔ او د هغې نتیجے هم خلقو ته ښے معلومے دی۔ عوامو به نه بلکه یو څو سیاستدانانو به حکومت جوړولو او ماتولو عام انتخابات چرے هم نهٔ ووشوی۔ د هغه وخت حکومت یوائې دا نه چه د عوامو سره به ئے سترګے نهٔ شوے لګولے۔ بلکه هغوی به اسمبلیانو ته هم مخ نهٔ نیولو۔ او څومره چه به ممکن کیدے شوه۔ د اسمبلۍ اجلاسونه به ئے ملتوی کول۔ او حالت دے ته رارسیدلے وو چه کله کله خو به وزارتونه په یوه ورځ بلکه په یو څو ګینټو کښې تار په تار شول۔ دا خبرے د برسرا قتدار جماعت په مفادو کښې خو کیدے شوے ولے د عام اولس د پاره نه چه د هغوی مستقبل مخدوش شوے وو۔ موږ د خپلو دوستانو او د شمنانو د خندا شوی وو۔ تردے چه زموږ د ژوند پاتے کیدلو صلاحیت هم شکمن وو۔

دا الزام بیخی غلط دے چه موجوده استحکام صرف د یو فرد په وجه دے۔ بلکه د دے وجه دا نظام حکومت دے چه په کښې د ملک عوام د یو مقرره معیاد نه پس د حکومت انتخاب کوی۔ او د دے نه پس دا مروزه دپکو نه خلاص وی۔ سره د دے مقننه، عدلیه، اخبارات او عوامی رائے عامه هر وخت د دے خبرے جاج اخلی چه حکومت دِ د عوامو د بهترینو مفادو مطابق کارکوی۔ چونکه زموږ ملک په دوؤ حصو کښې تقسیم دے۔ او د دواړو حصو ترمینځه ډیره اوږده فاصله ده۔ په دے وجه د یو مضبوط مرکز وجود ضروری دے۔ چه هرے حصے ته د آئینی تنظیم سره د خپلو معاملو سرانجام کولو د ازادانه اختیار ورکولو نه علاوه په خپل مینځ کښې د اختلافاتو ختمولو طاقت هم لری۔ په موجوده آئین کښې د یو مضبوط مرکزی حکومت مطلب هرګز دا نهٔ دے چه د ټولو اختیاراتو واګے دِ د یو سړی لاس کښې ورکړے شي۔ حقیقت دا دے چه په موجوده آئین کښې صوبو ته دومره اختیارات ورکړے شوی دی چه هغه وړاندے هیڅرے نهٔ وو ورکړے شوی۔ لکه مثلاً د ریل محکمه او صنعتونه د صوبو په نګرانۍ کښې ورکړے شوی دی۔ به هرحال په موجوده آئین کښې ټول اختیارات یو مرکزی ادارے ته حواله دی۔ او د هغې حلقه اختیار او حدود واضح کړے شوی دی۔ انتظامیه عدلیه او مقننه په خود مختار حیثیت کښې په آئینی طور په خپله خپله دائره کښې کارکوی۔ په دے بنا دا ضروری ده چه صرف یو مضبوط مرکزی حکومت قومی پالیسیٔ او قومی زاویه نظر ته ترقی ورکولے شي۔

پخوانی پالیسانی نظام علاقائی کشیدگی پیدا کړی وه. او د قومی مفاداتو برخلاف په ځ د ذاتی مفادو حوصله افزائی کوله - په اقتصادی لحاظ سره چه په تیرو شپږو کالو کښې کومه ترقی شوی هغه ستاسو د وړاندے ده. د وړاندینی حکومت د وخت د وړومبئ پنځکلیزے منصوبے انجام هم پټ نۀ دے. ترڅومره چه زمونږ د دوۀ پنځکلیزو منصوبو تعلق دے مونږ چه د دے کومے پولے مقررکړے وے د خدائے پاک په کرم مونږ هغ ته رسیدلی وو. او د زراعت او صنعت په شعبو کښې مونږ د مقررو حدونو نه هم وړاندے شوی یو. دا الزام چه د دوئیمے پنځکلیزے منصوبے دولت یوڅو افرادو ځان ته راغونډ کړے دے - په کم علمئ مبنی دے - د پوره اخراجاتو یو معمولی حصه په ذاتی حصه کښې راغلی ده. او قریبًا (۸۵ فیصدی) د سرکاری شعبے په برخه کښې رسیدلی ده. او هغه به د عوامو په ترقیاتی منصوبو خرڅ کیږی.

د دے خبرے د دنیا خلقو اعتراف کړے دے چه پاکستان په ډیر اهلیت او قابلیت سره ښلے ترقیاتی منصوبے مرتب کړی دی. او په پوره پوره صلاحیت سره ئے په هغ عمل کړے دے. او نن ورځ د ترقی پذیر ملکونو د پاره پاکستان د نمونے په ډول پیش کولے شی. د الله تعالیٰ په فضل وکرم د سیاسی او اقتصادی استحکام دا فائدے د انقلاب او موجوده آئین د نفاذ نه پس حاصلے شوی دی. زۀ د عوامو د اتحاد او ملکی ترقئ داعی یم. او زما یقین دے چه دا مقصد د مستحکم سیاسی او اقتصادی حالت ماتحت حاصلیدے شی. دغه وجه ده چه موجوده انتخابات کیږی. په تاسو کښې هریو سړے د دے اهمے معاملے نه ښۀ خبر دے . او هغۀ ته د قوم په مستقبل کښې د پوره پوره یقین سره بغیر د څه خوف وخطر نه د ښلے رائے اظهارکول پکار دی. په دے حال کښې چه ستاسو زړۀ په دے خبره مطمئن وی. چه تاسو د پاکستان د استحکام د پاره ښل ووټ استعمال کړے دے. ستاسو په وړاندے صرف یو مقصد پکار دے او هغه د پاکستان استحکام دے. تاسو په ښله فیصله کښې ذاتی خوښې ناخوښې ته دخل مۀ ورکوئ. او مۀ د ذاتی جذباتو او ذاتی شکایتونو نه مغلوب کیږئ - نن ټول قام تاسو ته سترګے نیولی دی. او ستاسو نه دا توقع لری چه ستاسو فیصله به دانشمندانه ، منصفانه او د وطن په مینه مبنی وی. الله پاک د تاسو ته د درستے فیصلے کولو توفیق درکړی. " پاکستان پائنده باد"

لکه څه رنګ چه ښاغلی صدر پورته په دے ښل تقریر کښې وئیلی دی. واقعی چه په ۲ جنوری سنه۱۹۶۵ء ټول قام د انتخابي ادارے د ممبرانو فیصلے ته سترګے نیولے وے. په

صوبه سرحد کښې په عواموکښې داسې جوش او اضطراب يا خو د ۱۷ر جولائي سن۱۹۴۷ء په ورځ وو چه په دغه ورځ د پاکستان په حقله د دې صوبې داولس دریفرنډم د نتيجې اعلان کيدونکے وو۔ او يا د صدارت د انتخاب په دې ورځ وو۔ چه په دې ورځ د پاکستان د مستقبل فيصله کيدونکې وه۔ سحر د اتنيمو بجو نه عوام ديأس واميد د مخلوطو جذباتو په کشمکش کښې اخته وو. ذهنونه مشوش او د اضطراب فضا خوره وه۔ پنځه بجې ماښام په هرکلي، قصبه او ښار يه کښې ډلې ډلې عوامو په ليواله زړه د ريډيو اعلانو ته غوږ نيکي کړي وو۔ اخر د انتظار لمحې لنډې شوې۔ پنځه نيمې بجې د نتيجې اعلانات شروع شول۔ او بيا د شپې نهه بجو پورې د مايوسئ اوتذبذب تورې لړې غيبې شوې وې۔ د پاکستان د خوش آئند مستقبل فيصله رښه شوی وه۔ د انتخابي ادارې ممبرانو د پاکستان مستقبل غوره کړې وو۔ او هغه د صدر په ډول د محمد ايوب خان انتخاب وو۔ ښاغلي محمد ايوب خان د ملک په دواړو حصو کښې څه د پاسه اَتۀ څلويښت زره ووټونه حاصل کړي وو۔ او په دې ډول د خپل حريف اميدوار مادر ملت محترمه فاطمه جناح په مقابله کښې د شلو زرو نه په زيات اکثريت کامياب شوې وو۔

د ۲ر جنوری سن۱۹۶۵ء ورځ د پاکستان په تاريخ کښې په دې وجه ډيره اهمه ده چه په دغه ورځ پاکستاني عوامو د ښاغلي صدر ايوب خان د پاليسئ او مقاصدو سره په واضح ډول خپل اتفاق ښکاره کړو۔ او هغۀ ته ئې د راتلونکي پنځو کالو د پاره د ملک د حفاظت و تعمير واګې اوسپارلې۔ يقيناً دا د قام د انتهائي اعتماد ثبوت دې۔ چه هغوی د خپل صدر په ذات کښې ښکاره کړې دې۔ موږ د الله پاک نه خواست کوو چه هغه د په خپل فضل وکرم زموږ صدر ته د اتوفيق ورکړي چه قام کومې عظيمې ذمه وارئ خپل عظيم رهنما ته ور په غاړه کړي دی په هغې کښې دِ هغه پوره پوره کامياب او سرخرويه شي. او د پاکستان اولس دِ دهٔ په قيادت کښې د عروج انتها ته اورسی۔

لکه چه مو وړاندې وئيلي دي د قيام پاکستان نه پس د پښتنو تاريخ په يو نوی دور کښې داخل شوې دې۔ د ازادئ نه پس پښتنو ته د تعليمي، معاشي او اقتصادي بهترئ په لړکښې يو لوئې ميدان په لاس ورغلے دې۔ د غلامئ په دور کښې چه د پښتنو علاقه د کومو سهولتونو او مراعاتو نه محرومه ساتلې شوې وه د قيام پاکستان نه پس تر ډيره حده د هغې تلافي شوې ده۔ او نن ورځ پښتانۀ د ژوند په هراړخ کښې پر مخ تګ

کوی ـ دا یو حقیقت دے چه کوم خلق د وخت د تقاضو او د زمانے د حالاتو سره د هم آهنګۍ او سازګارۍ قابل نهٔ وی هغوی د ترقۍ په منډه کښے وروستو پاتے کیږی ـ پښتانهٔ د مضبوط کردار خاوندان او د سیاسی شعور نه وافره برخه لری ـ د دے قام افرادو په مختلفو وختونو کښے لوئے لوئے کارنامے سر ته رسولی دی ـ د دوئ تیر تاریخ شاندار او د ځلانده کارنامو نه ډک دے ـ د قیام پاکستان نه پس چه دوئ ته د ترقۍ کوم موقع حاصلے شوے دی ـ د هغے نه د دوئ د حال ، روښانه او مستقبل خوش آئند معلومیږی ـ په دے وجه دا توقع بے ځایه نهٔ ده چه دوئ به د خپلو فطری صلاحیتونو په رڼا کښے د هغه موقعو او سهولتونو نه فائده واخلی ـ کوم چه د ملک د ازادۍ نه پس دوئ ته حاصل شوی دی ـ او د خپل کردار ، وسعت نظر او د وطن دپے لوئه خدمت د جذبے زیر اثر به په عظیم پاکستان کښے ډیر زر خپل اصلی قدر و قیمت حاصل کړی ـ

# پاکستان پائنده باد

# پښتانهٔ قبائیل

## د روایاتو مطابق قبائیلی تقسیم، قبیلوی شجرې او دهرې قبیلې د استوګنې د علاقې تفصیل

د روایاتو مطابق ټول پښتانهٔ قبائیل په پنځو طبقو کښې ویشلي دي. لکه چه خوشحال خان خټک وائي چه

پښتون په اصل کښې سړبني دے  یا غورغښتي دے یا بیټني دے
لودي غلجي دے د بیټني له لوره  په سړبن پورې بیا کرلاني دے

دا تقسیم په دې روایت مبني دے چه سړبني، غورغښتي، او بیټني قبائیل د قیس عبدالرشید د دریو ځامنو (سړبن، غورغښت، بیټن) اولاد دے. دا دریواړه طبقې د اصلي افاغنه په نامه هم مشهورې دي. ځکه چه د روایاتو مطابق دوئ د قیس عبدالرشید صلبي اولاد هم دے. او د «افغنا بن ارمیا» په اولاد کښې هم شامل دي. باقي دوه طبقې یعنې «متوزي» (غلجي او لودي) او کرلاني په وصلي افاغنه یادیږي. ځکه چه دوئ د قیس عبدالرشید په صلبي اولاد کښې شامل نهٔ دي. البته د افغنه بن ارمیا په اولاد کښې ورګډ دي. په دې طبقو کښې هره طبقه بیا په ډیرو ورو ورو ذیلو او ځانګو کښې ویش ده. چنانچه دا ټولې ذیلې او ځانګې پنځه د پاسه څلورسوه حساب شوي دي چه تفصیل ئې په دې ډول دے:-

(۱) سړبني قبائیل :- یوسل او پنځه (۱۰۵)
(۲) غورغښتي قبائیل :- پنځه کم سل (۹۵)
(۳) بیټني قبائیل :- پنځویشت (۲۵)
(۴) متوزي (غلجي او لودي :- دوه پنځوس (۵۲)

(۵) کرلاني قبائيل :- يو سل او اته ويشت (۱۲۸)

د رواياتو مطابق متوزي قبائيل د بيټنو سره وصل شوي دي - او کرلاني قبائيل دځينې رواياتو په بنا د غور غشتو سره - او دځنو رواياتو مطابق د سړبنو سره ملحق دي -

## اوله طبقه :- سړبني قبائيل -

دا قبائيل د خپل مورث اعلی سړبن په نامه سړبني يادیږي - د رواياتو مطابق سړبن د قيس عبدالرشيد ځوئ او د غور غشت او شيخ بيټ ورور دے - د ده نامه ابراهيم وه - ولے په سړبن مشهور شو - او د دے وجه دا بيانولے شي - چه د ده اولاد نه وو - او په دے خبره به دے تل غمژن او پريشانه وو - چنانچه شيخ بيټ چه يو خدا رسيده او نيک انسان وو - ده له خپل ځوئ اسماعيل ورکړو - او دا هلک سړبن په ځوی اونيولو - او په خپل کورے زيږکړو - د دے نه پس د شيخ بيټ په دعا او توجه د سړبن نور ځامن هم اوشول - او د هغوی اولاد په پښتنو قبائيلو کښے د خپل کثرت په وجه د نوم خاوندان شول - د اسماعيل اولاد هم په سړبنو کښے ورګډ دے - وئيلے شي چه شيخ اسماعيل هم د خپل پلار په شان يو خدا رسيده او نيک انسان وو - او ذکرئے په مرآة الافاغنه کښے د سړبني اولياء په لړ کښے موجود دے - د سړبن د زیږيدنے او مړينے تاريخونه معلوم نه دي -

د سړبن دوه ځامن وو - چه د يو نوم شرخبون (شرف الدين) او د بل نوم خرشبون (خيرالدين) وو - د شرخبون (شرف الدين) د ژوند حالات هم په تياره کښے دي - البته د خرشبون (خيرالدين) څه لږ شان حال په « پټه خزانه » کښے موجود دے - د دے کتاب (پټه خزانے) مطابق شيخ خرشبون په کال ۳۰۵ه کښے زیږيدلے وو -

خرشبون بابا هم د خپل تره شيخ بيټ په شان يو نيک او خدا پرست انسان وو - د خدائے پاک په عبادت کښے به لګيا وو - د دوی استوګنه په کسي غره کښے وه - د پټے خزانے د رواياتو مطابق د شيخ خرشبون د ژوندانه په زمانه کښے د هغه پلار او تره (سړبن نيکه او بيټ نيکه) لا ژوندي وو - او دوی ټول په يو ځائے اوسيدل - ولے څه موده پس خرشبون د خپل پلار او تره په اجازت د خپل اولاد سره د «کسي غر» نه د غورے مرغ په لور په کډه لاړ - او هلته ميشته شو - خرشبون بابا به کله کله د غنډان غر ته هم تلو - او د خدائے

پاک عبادت به یې کولو۔ په کال کښې به یو ځل د خیل تره شیخ بیټ په خدمت کښې هم حاضریده۔ او د هغه د مرګ نه پس به هم د هغه قبر ته راتلو۔

خرشبون بابا په کال ۱۱۰ هـ کښې په مرغه کښې وفات شو۔ ولې د هغه اولاد په مرغه کښې استوګن وو۔ خو څه موده پس د هغه په ځامنو کښې د کاسي اولاد بیرته کسي غر ته لاړ او د پښین په لتو کښې اباد شو۔ او د ګند او څمند اولاد په ننګرهار، خیبر او پېښور په علاقو کښې خور شو۔ شیخ خرشبون یو ښه شاعر هم وو۔ دا لاندې شعرونه د هغه سره منسوب دی۔ دا شعرونه شیخ خرشبون هغه وخت ویلی وو کوم وخت چه هغه د خپل اولاد سره د کسي غر نه د غوړې مرغې په لور په کډه تلو۔ او په دې موقع د ده په جدائی شیخ اسماعیل د فراق نعرې وهلې وې۔

# د شیخ خرشبون شعرونه

بیلتانه نعرې وسوه (وشوه) په کورباندې ¹ — نه پوهیږم چه به څه وی پښتنی په ویاندې
له خپلوانو نه بیلیږم په سرو سترګو — دواړه سترګې مې په وینو دی ژړاندې
اسمعیله! ستا نارو مې زړه سوری (کړو) — په چړو دویرې پرې سی (شی) د زړه مړاندې ²
زمه زمه چه اوږد یون مې دې ومخ ته — د ویانه نه څوړی ³ به اچوم و ترخ ته
ستاسې یاد به مې وی بس د زړه ومخ ته — که دا زمکه خرونه ټول شی (شی) لاندې باندې

د شیخ خرشبون په باب کښې د پټې خزانې دا شهادت د پښتنو د شجرو په لړکښې ډیر اهمیت لری۔ د دې نه موږ ته دا خبرې معلومیږی۔

(۱) سړبن او شیخ بیټ نیکه ورونه دی۔ (او دا خبره د پښتنو ټول شجره نویس او لیکوال هم منی۔ چه سړبن، غورغښت او بیټن د قیس عبدالرشید ځامن وو۔)

(۲) شرخبون او خرشبون د سړبن ځامن وو۔ (د پښتنو شجره نویسو له خوا دا خبره هم متفقه منلی شوی ده)۔

(۳) خرشبون په کال ۳۰۵ هـ کښې زیږیدلے دے۔ او اګر چه د شرخبون د زیږیدنې تاریخ نه دے معلوم ولې چونکه هغه هم د خرشبون ورور دے۔ نو موږ دا قیاس کولے شو چه هغه به هم د څلورمې صدۍ هجري په اغاز کښې زیږیدلے وی۔

(۴) د خرشبون د ژوند په زمانه کښې د هغه پلار او تره (سړبن او بیټن) لا ژوندی

¹ د زړه رنګونه۔ ² یون۔ سفر۔ ³ سامان سفر

وو نوموړي دا قياس کولے شو چه د څلورمے صدئ هجري په اخري کالونو کښے په سړبن کښے وفات شوے وی۔

(٥) د روایاتو مطابق د قیس عبدالرشید د مړینے نیټه سنه ١٦٥ھ / ٦٦٦٢ ګڼلے شی۔

(٦) اوس که چرے د پلار د وفات په وخت کښے د سړبن او بیټن عمرونه پنځه څلویښت او څلویښت کاله هم ګڼلے شی۔ نو بیا به هم د خرشبون د زیږیدنے تر وخته (سنه ٣٠٥م) پورے ددے دواړو مشرانو (سړبن او بیټن) عمرونه کم وزیات درے درے سوه کاله وو۔ او دومره عمر د موجوده انسان د پاره ناممکن دے۔ علاوه ددے نه په دومره عمر کښے یو انسان د اولاد پیدا کولو قابل هم نهٔ شی پاتے کیدے۔ په دے بنا دا ظاهره ده چه سړبن، بیټن او غورغشت د قیس عبدالرشید ځامن نهٔ شی کیدے۔ بلکه دا د وروستئ زمانے او په اکثرو احتمالاتو د څلورمے صدئ هجری افراد دی۔ او که هرومرو سړبن، بیټن او غورغشت د قیس عبدالرشید ځامن اوګڼلے شی۔ نو په دے صورت کښے به قیس عبدالرشید په سنه ١٦٥ھ کښے نهٔ وی وفات شوے۔ او دغه شان به د قیس عبدالرشید سره منسوب ټول روایتونه غلط ثابت شی۔

لکه چه معلومه ده د پښتنو د سیاسی شهرت آغاز د خرشبون د زیږیدنے (سنه ٣٠٥م) نه ډیر وړاندے شوے وو۔ د «فرشتے» د وینا مطابق د اتمے صدئ مسیحی په نیمه نیمه کښے پښتانهٔ د سپین غر چارچاپیره لمغان، ننګرهار، خیبر او پیښور په علاقو کښے میشته وو۔ د صفاریانو او بیا په دوئ پسے د سلطان ناصرالدین سبکتګین اکثر فوځونه هم په پښتنو مشتمل وو۔ په دے بنا د شیخ بیټ، سړبن او غورغشت سره د پښتنو دے شماره قبائیلو اغاز کول نه څه تاریخی سند لری او نهٔ اهمیت۔ دا سے معلومیږی چه ددے شجرو د مرتب کولو په وخت کښے د شجره نویسو په لاس کښے څه مستند تاریخی شهادتونه موجود نهٔ وو۔ او وړومبی لیکوال چه کوم روایت اوریدلے دے۔ نو هغه ئے درست منلے اولیکلے دے۔ او وروستنیو نورو لیکوالو د هغه تقلید کړے دے۔ د شجره نویسو د وینا مطابق اګرچه ددے شجرو اغاز د اسلام د اغاز سره شوے دے۔ ولے حقیقت دا دے چه دا شجرے په اول ځل د اوولسمے صدئ په اغاز کښے مرتب شوی دی۔ او ځکه په تاریخی لحاظ سره مستند نهٔ معلومیږی۔

لیکن باوجود ددے چه په دے شجرو کښے ډیرے خامئ اوکمئ دی۔ او په تاریخی لحاظ سره د اعتماد جوګه نهٔ دی۔ بیا هم د پښتنو په تشکیلاتو کښے لوئے اهمیت لری۔ د پښتنو په

بے شمارہ قبائیلو کښې وحدت او مرکزیت هم په دے شجرو قائم دے. د دے شجرو په وجه پښتانهٔ قبائیل د خپل نسل ، خپل تاریخ ، خپلو قامی روایاتو او په خپل مینځ کښې د رشتو او اختلافاتو نه خبردار دی. په ژورنظر سره د دے شجرو مطالعه د پښتنو قبائیلو ترمینځه د نسلی اختلاف په لورمې بعضه د دوئ د شکل و شباهت خط و خال ، ژبے ، لهجے ، دودونو ، دستورونو او خویونو نه څرګند دے ، رهنمائی کوی. او په دے شجرو کښې د دے اختلافاتو د لرے کولو او ټول پښتانهٔ قبائیل یو مرکز ته د راغونډولو کوشش شوے دے . او د دے اتحاد مرکز د قیس عبدالرشید ذات دے . پس که چرے د تاریخی او عقلی شواهدو له مخه قیس عبدالرشید د ټولو پښتنو مورث اعلیٰ ګڼل درست نهٔ وی . بیائے هم د پښتنو یو معنوی مورث اعلیٰ ګڼل پکار دی .

د پښتنو د دے شجرو نه دا هم معلومیږی چه د پښتنو قبائیلی تشکیلات په څلورو اصولو دی . یعنی په (۱) په وینه (نسب) (۲) خپلوی (د لور خور ورکړه راکړه ) (۳) ګوندی (پره جنبه) (۴) الحاق .

پښتانهٔ وینے یعنی نسبی رشتے ته ډیر اهمیت ورکوی . او د قدر و احترام په نظر ورله ګوری په پښتو ژبه کښې داسے ډیر متلونه دی . چه د هغے نه د دے خبرے مرسته کیږی . لکه په مثال کښې وئیلے شی « رګه رګه رام کاږه » یا « لکه چه وینه ژاړی هسے مینه نهٔ ژاړی .» یعنی د وینے اشتراک د عامے دوستئ او تعلق نه زیات اثر لری . په دے لړ کښې وئیلے شی چه « څه رور راوړاندے څه خور » . « څه مور راوړاندے څه ترور » د دے مثال د کاکړو او شیرانیانو اتحاد دے . د روایاتو مطابق شیرانے د شرخبون مشرځوئے او د کاکړ خورځے وو . د مشرئ په معامله د خپل پلار نه مرور شو . او خپلو ماماګانو « د کاکړو » ته لاړ . او د هغے ورځے نه پس شیرانی په نیکهٔ بڼه کښې شامل شول .

د غه پره جنبه او ګوندی هم د نسبی ورورولئ او عزیز لولئ ځائے نیسی . لکه په مثال کښې د شینوارو ګوندی د غلجیو څخه یا د مهمندو پره جنبه د خوګیانو سره په دے دستور د الحاق مسئله هم دا حیثیت لری . لکه چه د روایاتو مطابق خوبیشکی ، مهمنزی او اتمان خیل د یوسف زو سره تړل شول . یا د ګدون قبائیل سالار او منصور ځانګے د غورغښتو نه بیلے شوے . او د یوسف زو سره ملحق شوے . په دے اصولو د پښتنو بے شماره قبیلے په خپل مینځ کښې یو تر بله یو ځائے شوی او ګنډلی شوی دی . او د قبائیلو ترمینځه عزیز ولی او ورور ولی هم په دے اصولو قائمه ده . په دے بنا دا شجرے د خپلو ټولو خامیانو باوجود په قبائیلی نظام کښې دا اهمیت ورل دی .

لکه چه وړاندې وېلې شوی دی . سړبنی قبائیل د خپل مورث اعلی سړبن په نامه مشهوردی. د شجرو مطابق د سړبن دوه ځامن وو. (۱) شرخبون (شرف الدین) (۲) خرشبون (خیرالدین) - د روایاتو مطابق د شرخبون پنځه ځامن وو. (۱) شیرانی (۲) ترین (۳) میانه (۴) بړیڅ (۵) اورمړ - د دوی مختصر حال او شجرې په دې ډول دی :-

# شجره نسب شیرانی بن شرخبون بن سربن بن قیس عبدالرشید




---

۱ ستوریانی په اصل کښې سیږ وو - عمر په ځوی نیولے وو۔

۲ د سنجر د پنځو وارو ځامنو اولاد په سعود خیل او غوریا خیل یادیږی۔

# (۲) ترین بن شرخبون بن سړبن




[۱] اولاد ئې بابوزی ۔

[۲] په اصل کښې سیدان دی ۔ په ترین کښې ګډ شوی دی ۔

[۳] اولاد ئې اروزی ۔ [۴] اولاد ئې نورزی

[۵] د سنه ۷۸۰ھ په خواوشا کښې اولاد ئې پوپلزی ۔

[۶] د سنه ۷۶۰ھ په خواوشا کښې اولاد ئې بارک زی ۔

[۷] اولاد ئې الکوزی ۔ [۸] اولاد ئې اسحاق زی ۔

[۹] شجره ئې ځان له بیله بیان شوی ده ۔

# شجره نسب د بامی بن حبیب بن پوپل بن زیرک (ابدالیان)

بامی

نصرت — کنی / بهلول — شها

معروف خان — علی خان

عمر

ملک سدو (د سدوزو مورث اعلیٰ - د قندهار مرزبان متولد سنه ۹۶۵ھ متوفی سنه ۱۰۲۱ھ).

ملک صالح (سنه ۹۵۰ھ د شیر شاه معاصر د احمد شاه وزیر اعظم - شاه ولی خان ددهٔ په اولاد کښې وو-)

خواجه خضر خان (مرزبان قندهار وفات سنه ۱۰۳۶ھ) — مردود خان وفات سنه ۱۰۵۲ھ — زعفران خان — کامران خان وفات سنه ۱۰۵۰ھ — بهادر خان

حسین خان وفات سنه ۱۰۶۹ھ مورث اعلیٰ ناظم ملتان

عیسیٰ — موسیٰ — اسماعیل خان

یعقوب خان — کمال خان — محبت خان — علی خان

یوسف خان — جعفر خان — غازی خان — عظمت خان — حلیم خان

هارون خان

فتح الله خان

رحمت الله خان (د شاه زمان وزیر مقلب به وفادار خان)

بار خان — مومن خان

حاجی عبدالرحمن

حافظ احمد خان

عبدالصمد خان — نواب شیر محمد خان — عبدالرحیم خان

نواب محمد خان — خدایار خان — صالح محمد خان

نواب سرفراز خان — محمد نواز خان — ربنواز خان

شیر خان مرزبان قندهار — خداداد سلطان (مرزبان قندهار سنه ۱۰۵۰ھ)

سرمست خان

دولت خان (مرزبان قندهار - مقتول سنه ۱۱۱۵ھ)

رستم خان مرزبان قندهار وفات سنه ۱۱۱۹ھ — محمد زمان خان رئیس هرات سنه ۱۱۲۵-۳۲ھ — نظر محمد خان

ذوالفقار خان رئیس هرات سنه ۱۱۳۶-۴۲ھ — احمد شاه غازی (سدوزو د سلطنت بانی سنه ۱۷۴۷-۷۳ھ)

لقمان خان وفات سنه ۱۱۶۳ھ

تیمور شاه سنه ۱۷۷۳-۹۳ء (۲۶ ثامن) — سلیمان — سکندر — ایوب — پرویز

شاه زمان (سنه ۱۷۹۳-۱۸۰۰ء) — شاه محمود سنه ۱۸۰۰-۰۳ء، ۱۸۰۹-۱۸ء — شاه شجاع الملک سنه ۱۸۰۳-۰۹ء و سنه ۱۸۳۹-۴۲ء

قیصر — کامران

شهزاده تیمور — فتح جنګ — شاه پور — نادر — صفدر جنګ

# شجره نسب بارک زی بن زیرک بن عیسےٰ بن زخترا ودل بن ترین




ا؎ شجره ئے وراندے دہ۔

۲؎ شجره ئے وراندے دہ۔

# د بارکزو حکمران ټبر اوله کورنۍ

## امیر دوست محمد خان
سنه ۱۸۲۶-۶۳ ع

- محمد اسلم خان
- محمد محسن خان
- محمد حسین خان
- محمد قاسم خان
- محمد صالح خان
- خیر محمد خان
- محمد اعظم خان سنه ۱۸۶۷-۶۹ ع
- محمد افضل خان سنه ۱۸۶۵-۶۷
  - امیر عبدالرحمان (سنه ۱۸۸۱-۱۹۰۱)
    - عبدالله خان
    - امیر حبیب الله خان سنه ۱۹۰۱-۱۹ ع
      - شهزاده عنایت الله خان (سنه ۱۹۲۹ ع صرف پنځه ورځې)
      - امیر امان الله خان (سنه ۱۹۱۹-۲۸ ع)
    - سردار نصرالله خان
    - شمس الدین خان
    - حفیظ الله خان
    - امین الله خان
    - محمد عمر خان
    - غلام علی خان
- محمد شریف خان
- محمد امین خان
- امیر شیر علی خان سنه ۱۸۶۳-۶۵ ع / ۱۸۶۹-۷۸ ع
  - محمد علی خان
  - ابراهیم خان
    - امیر یعقوب خان سنه ۱۸۷۸-۷۹ ع
      - موده جان
  - محمد ایوب خان
  - عبدالله خان
- غلام حیدر خان
- محمد اکبر خان
- محمد هاشم خان
- محمد عظیم خان
- محمد شعیب خان
- محمد کریم خان
- محمد رحیم خان
- محمد صادق خان
- ولی محمد خان

# (دویمه کورنۍ)

## سردار سلطان محمد خان (پیښور ثانی)

- یحیٰ خان ← اصف خان → یوسف خان

- نادر شاه (سنه ۱۹۲۹-۳۳ ع)
  - ظاهر شاه (سنه ۱۹۳۳ ع ----)
    - محمد اکبر خان (وفوت شوی دی)
    - محمد احمد شاه (ولیعهد)
    - شهزادۍ بلقیس
- محمد عزیز خان
  - سردار داود خان
  - سردار نعیم خان
- هاشم خان
- شاه محمود خان
- شاه ولی خان

# ۳- شجره نسب میانه بن شرخبون بن سړبن




# ۴- شجره نسب بړیڅ بن شرخبون بن سړبن




# ۵- اورمړ بن شرخبون بن سړبن



لکه چه د شجرو نه معلومیږی د شرخبون پنځه ځامن وو - یعنی شیرانۍ ، ترین ، میانه ، بړیڅ ، او اورمړ - د روایاتو مطابق شیرانۍ د شرخبون مشر ځوئ وو - ولې پلار د مشرۍ پګړۍ ترین ته په سرکړه - په دے خبره شیرانۍ د خپل پلار نه مرور شو . او خپل ماما کاکړ نه لاړ - او د هغ ورځ نه شیرانی قبیله په کاکړو کښې شامله شوه . او په نیکه بده کښې د غوڅتو د طبق سره تعلق لری -

د شیرانیانو علاقه د دره ګومل سویل ته واقع ده . کوه سلیمان چه ورله قیسی غر هم وائی د دوی په علاقه کښې واقع دے - د دے علاقے په قطبی حصه کښې حسن خیل میخ کښې ابو خیل او جلوانی او سویلی حصه کښې ئے « کپیپ او هریپال » استوګن دی - د قیسی غر په قبله د ګوسے په غرونو کښې کاکړ اباد دی - د وزیرو په شان د دوی علاقه هم پلنه او غرڅیزه ده - ولې د کروندے زمکه ئے کمه ده -

**ترین** :- لکه چه د شجرے نه معلومیږی - د ترین درے ځامن وو - چه « تور » « سپین » او « اودل » نومیدل - لیکن د ترین په نامه صرف تور او سپین مشهور شول - « اودل » په خپله نامه ځان له بیله څانګه شوه - تور ترین په پشین او ډکۍ کښې او سپین ترین هرنائ ډکۍ او چوتیر په علاقه کښې استوګن دی - ترین په رسم و رواج او خویونو خصلتونو کښې د ابدالیانو په څیر دی - په تورو او سپینو ترینو کښې د ځانئ کور د بټي زی په څانګه کښې دے چه د تور ترین څانګه ده - لکه چه د دے متل نه معلومیږی :- « ځانی ده په دوه کوره ، په ترین کښې په بټي ده - په نوحان کښې په کتي ده »

**ابدالیان** :- په ابدالیانو کښې د زیرک د اولاد نه علاوه د دے قبیلے نورے څیلۍ په « پنجپائ » مشهورے دی - د ابدالیانو علاقه اندازاً څلور سوه میله اوږده او اووه شله میله پلنه ده - د دوئ د علاقے حد د قطب په لور د هندوکش ، کوه بابا ، او کوه سیاه هغه حصے سره جنګیدلے دے - چه هلته « هزاره او ایماق » اباد دی - د دوئ قبلئیز حد د ایران سره او قبله په سویل د « شوراوک » او « خواجه عمران » غرونه دی - په دے غرونو کښې د ابدالیانو یوه طائفه « اڅک زی » او سیږی - او د دے غرونو په نمرختیزه حصه کښې کاکړ اباد دی - د « مرغ » کلے چه په ۱۷۷۳ کښې دلے احمد شاه غازی وفات شوے وو - د خواجه عمران د غرونو قطب په نمرخاتهٔ پروت دے - د ابدالیانو په نمرخاتهٔ د غلجیانو علاقه ده - هلمند ، فراه رود ، خاشرود او ارغنداب په دے علاقه کښې مشهور سیندونه دی -

لکه چه د شجرے نه معلومیږی- د ترین په ځامنو کښے « اودل » کشر وو- ولے د پلار نه پس دغه د قام مشر شو- او د خپل ریاست په وخت کښے ئے خپل خلق د ځان نه خوشحال اوساتل- د اودل نه دوه ځامن پاتے شول- سلیمان او زخترـ په پلار پسے زختر د قام مشر شو- د روایاتو مطابق شپږ شله کاله ژوندے وو- او خپل اولاد ئے تر درے پشته اولیدلو- د زختر نه پس د دغهٔ د وصیت مطابق عیسیٰ د قام مشر شو- د عیسیٰ نه درے ځامن پاتے شول- زیرک- میر او نور- په پلار پسے زیرک د قام مشر شو- د زیرک څلور ځامن وو- بارک ، الکو ، مستی او پوپل- زیرک په خپل ژوند کښے خپل ځائے بارک ته ورکړو- ولے څه موده پس پوپل په چل ول مشری ځان له کړه او خانی د پوپل کورله راغله-

د پوپل نه درے ځامن پاتے شول- حبیب ، بارو ، ایوب- حبیب د اولس خانی کوله. دوه پنځوس کاله ژوندے وو- د دهٔ شپږ ځامن وو- چه د یو نوم په کښے بامی وو- د مشرئ د پاره په ورونو کښے جنګونه شروع شول- ولے وروستو د جرګے په صلاح بامی د قام په مشری او تاکل شو- دا سړے اویا کاله د قام مشر وو- د بامی نه درے ځامن پاتے شول- (نصرت ، ګنی ، شها)- په دوئ کښے یو هم د مشرئ قابل نهٔ وو- په بامی پسے بهلول د قام مشر شو- چه د « ګنی » څوئے وو- د دهٔ نه دوه ځامن پاتے شول- معروف او علی خان. معروف د قام مشر شو- په دهٔ پسے مشری عمر ته اورسیدله- د عمر نه درے ځامن پاتے شول- صالح ، اسدالله او ادم- د قام مشری د اسدالله اورسیده- دغه سړے چه په عوامو کښے په « سدو » مشهور دے- او د دهٔ په نامه دا قبیله په « سدوزی » مشهوره ده- او د احمدشاه غازی مشر نیکهٔ دے- اسدالله یو قابل سړے وو- د ابدالیانو ټولے تپے او د غلجیانو څنے ځانګے ئے په خپله پره جنبه راواړولے- او په ډیر عزت ئے خپل ژوند تیر کړو- د بادشاه شاه عباس اعظم دلوری نه د ابدالیانو رئیس منلے شوے وو- د پنځه اویا کالو په عمر کښے وفات شو- د سدو نه پنځه ځامن پاتے شول- خواجه خضر خان ، مودود خان ، زعفران خان ، کامران خان او بهادر خان- د اولس په خوښه خواجه خضر خان په مشر تابه او تاکلے شو- شل کاله ئے د قام خانی اوکړه- د دهٔ دوه ځامن وو- یو خداداد سلطان او بل شیر خان- په دغه وخت کښے د ایران بادشاه شاه عباس ثانی وو- د پلار په ځائے خداداد سلطان د قام مشر شو- دا یو ډیر قابل او مدبر بنیادم وو- د اولس ټولے جګړے ئے په جرګو مرکو فیصله کړے- دغه وخت کښے ابدالی طائفهٔ د قندهار مشرقی خوا په ارغسان کښے اوسیدلے- د غلجیانو مشر سلطان ملخ وو- خداداد سلطان د ورورولئ او عزیزولئ

د غلجیانو او ابدالیانو ترمینځه حدود اوویشل - دے سرې په اخروړځوکښې په کاکړو
تیرے اوکړو - ډیرے اووژل - اوکورونه ئے ورله تالاکړل - لیکن ډیر زر په دےکارپښیمانه
شو - او د اولس ریاست ئے خپل ورور شیرخان ته اوسپارلو - دنیاوی ژوند ئے پریښو
او د خدائے پہ یادو کښې مشغول شو -

شیرخان د خپل ریاست په وخت کښې د قندهار ایرانی بیګلر بیګی سره مخالف شو - و لے
ایرانی دربار د ابدالیانو مقابله په زور او نۀ کړه - بلکه په دوئ کښې ئےکورنۍ مخالفت پیدا کړو - او
د خداداد سلطان د ترۀ ځوی سلطان حسین ته ئے د مرزا خطاب ورکړو - او د ابدالی طائفو
مشرئے اوټاکلو - شیرخان د دوئ په جواب کښې د غلزو یوه ډله د ځان سره جمع کړه - او د
ترنک سیند په غاړه په یو مضبوط ځائے کښې میشته شو - او د مغل بادشاه شاه جهان
نه ئے د مرستې خواست اوکړو - شاه جهان سمدستی هغۀ ته خلعت ورالیږلو - اودشهزاده
خطاب ئے ورکړو - او حاکم غزنی ته ئے اولیکل چه د ضرورت په وخت کښې د شیرخان
فوځی امداد اوکړی - بل لور ته ایرانی دربار د شاه حسین دلجوئ شروع کړه - ولے سلطان حسین
د ایرانی دربار د نفاق د پالیسئ نه ناراض وو - هغه شیرخان ته د روغې په نیت ورغلو او
د ریاست ټول حقوق ئے هغۀ ته اوسپارل - ایرانی بادشاه چه د دے نه خبر شو نو د قندهار
"بیګلربیګی" ته ئے اولیکل چه موږ شیرخان ته ځوئے وټلی دی - نو تۀ د ابدالیانو په
معاملاتو کښې ګوتے مۀ وهه - د دے نه پس شیرخان د قام د یو رئیس په ډول مستقل
شو - او د (۶۵) کالو په عمر کښې د ښکار په وخت کښې د آس نه پریوتو او مړ شو -

د شیرخان نه پس د هغۀ ځوئے سرمست خان د قام مشر شو - او ډیرش کاله د
قام رئیس وو - د هغۀ نه پس دولت خان مشر شو - ولے دے ورکوټے وو - نو د دۀ ترۀ
"حیات سلطان" به د هغۀ په ځائے کار کولو - په دغه وخت کښې د قندهار بیګلربیګی
ګورجین خان "ګرجی" وو - دے سړی خو په اوله کښې د دولت خان سره روغه لرله -
ولے په اخر کښې په ناوړه کارونو سر شو - او د سدوزو د یو دوو بے غیرته سړو چه عزت
او عقل نومیدل په مرسته او سازش ئے دولت خان او د هغۀ ځوئے نظر محمد خان
اونیول - او وئے وژل - د دولت خان نه دوه ځامن پاتے شول - رستم خان او زمان خان
رستم خان د قام مشر شو - ولے دے هم ګورجین خان په چل وواژۀ - په دغه وخت
کښې ابدالیان بے مشره شول - ګورجین خان د ابدالیانو اولس د ارغستان د علاقے نه د
قندهار په مشرقی خوا کښې میشته کړه - دلته هم د ګورجین خان د لاسه په ابدالیانو ډیر

ظلمونه اوشول. د دې ظلمونو په نتيجه کښې ابداليان د آل و عيال سره د شوراوک او خوا وشا غرونو ته اوتښتېدل. د دې خدمت په بدل کښې ګورجين خان ته د سلطانۍ خلعت او د شاه نواز خان خطاب ورکړې شو.

د ګورجين خان د ظلمونو نه ابدالي طائفه چه پښتو سی زره کورونه وو. څه لږ شوراوک او ډېره ئې بکوا ورشو ګانو ته اوتښتېدل. او په قبله او غزېدل. په کومو ورځو کښې چه ايرانۍ حکومت د خسرو خان په مشرتابه کښې خپل دويم فوځ د ګورجين خان د بدل اخستلو اراده اوکړه. او د حيات سلطان ځوئې عبد الله خان او د هغهٔ ځوئې اسد الله خان ئې د ملتان نه رااوغوښتل. دا پلار او ځوئې د ملتان نه قندهار ته او د قندهار نه هرات ته لاړل. دغه وخت کښې د ايرانۍ دربار له خوا د هرات ګورنر عباس قلي خان شامل وو. دې ګورنر عبد الله خان او د هغهٔ ځوئې دواړه قيد کړل. ولې لږې ورځې پس د هرات قزلباشو د عباس قلي برخلاف بغاوت اوکړو. او هغه ئې د هرات نه او شړلو. په دې جګړو کښې عبد الله خان سره د خپل ځوی د قيد نه غرونو ته اوتښتېدهٔ. او بغاوت ئې شروع کړو. او په هرات باندې د حملې په نيت راروان شول. د هرات نه د يو فرسخ په فاصله د ابداليانو او ايرانۍ حاکم جعفرخان مقابله اوشوه. په جنګ کښې ايرانۍ حاکم ګرفتار شو. ابداليانو ښار محاصره کړو. او بيا ئې په هرات قبضه اوکړه. د دې نه پس د هرات صوبه د ابداليانو په قبضه کښې راغې.

اسد الله خان د فراه په جنګ کښې د ميرمحمود غلجي د لاسه اووژلې شو. د دې نه پس زمان خان د ابداليانو مشر شو. د دهٔ په وخت کښې په ابداليانو کښې بې اتفاقي پيدا شوه. د سردارۍ په حقله په دوئ کښې جنګونه شروع شول. او دا حالت د نادرشاه د حملې تر وخته قائم وو. دغه وخت ابداليان د مجبورۍ نه د دشمن مقابلې ته متفق شول. د زمان خان ځوئې ذوالفقارخان ئې د فراه حاکم اومنلو. او الله يارخان ئې د هرات حاکم کړو. او دواړه د دشمن د مقابلې په تابيا کښې ګکيا شول. د نادر شاه او ابداليانو د جنګونو په موقع د ذوالفقارخان مدد ته شاه حسين غلجي هم د قندهار نه فوځي کمک راليږلې وو. ولې د نادر شاه په مقابله کښې دوئ کامياب نهٔ شول. ذوالفقار خان د خپل ورور احمد خان (چه وروستو احمد غازی شو) سره قندهار ته په تيښته لاړ. او د شاه حسين غلجي سره ديره شول. ليکن د قندهار د استوګنې په وخت کښې شاه حسين په دوئ څه بدګمانه شو. او دوئ ئې نظربند کړل. اوکوم وخت چه د نادر شاه په لاس قندهار

تسخیر شو۔ دغه وخت دا دواړه ورونه هم د قید نه ازاد کړے شول۔ نادر شاه د دے ورونو د شکل و شباهت، اخلاق او شرافت نه ډیر متاثر شو۔ او د دوی سره ئے ډیر ښهٔ سلوک اوکړو۔ د دے نه پس د احمد شاه د پاره د ترقئ لاره ازاده شوله۔ تر دے چه د نادر شاه د مرګ نه پس دغه د پښتنو منتخب بادشاه شو۔ د ابدالیانو دا وړو مے سلطنت چه بانی ئے احمد شاه وو۔ په پوپل زو کښے د سدو زو په څانګه کښے وو۔ احمد شاه او د هغهٔ اولاد په افغانستان او د پنجاب په څنو حصو باندے د ١٧٤٧ء نه تر ١٨١٨ء پورے حکومت لرلو۔ ولے وروستو بارک زو ته منتقل شو۔

**بارک زی :-** د زیرک په اولاد کښے بله اهمه قبیله د بارک زو ده۔ دا قبیله په شمار کښے د ټولو نه زیاته ده۔ دوئ د قندهار په جنوبی علاقو کښے د ارغستان په غرونو کښے د هلمند سیند په خواؤشا کښے اباد دی۔ د بارک زو او پوپل زو تر مینځه د اقتدار د پاره کشمکش د ابتدا نه جاری وو۔ لکه چه پورته وئیلے شوی دی زیرک په خپل ژواندانهٔ په خپل ځائے "بارک" مقرر کړے وو۔ او هغه د پلار په ژوند ښجلس کاله د قام مشری کړی وه۔ او په خپل ښهٔ سلوک ئے اولس د ځان نه خوشحاله کړے وو۔ ولے پوپل چه د بارک کشر ورور وو په چل ول مشری ځان ته کړه۔ او د دے نه پس د قام مشری د پوپل په کورنئ کښے وه۔ ولے د دواړو کورنیو تر مینځه دا قتدار د پاره کشمکش جاری وو۔ تر دے چه د نادر شاه افشار د قتل نه پس چه پښتنو د خپل ځان د پاره د یو بادشاه منتخب کولو په غرض کوم سرداران په ګوته کړی وو۔ په هغوی کښے د بارک زو مشر حاجی جمال خان هم یو امیدوار وو۔ او د بادشاهۍ په طمع وو۔ حاجی جمال خان د احمد شاه په حق کښے په دے شرط دست بردار شوے وو۔ چه د سدو زو په حکومت کښے به د وزارت عهده په بارک زو کښے او د محمد زو په څانګه کښے وی۔ او حقیقت دا دے چه د سدوزو د حکومت په زمانه کښے د محمد زو کورنئ د حکومت په معاملاتو کښے ډیر لوئے اقتدار لرلو۔ دغه وجه وه چه په ١٨١٨ء کښے د شاه محمود د بے عقلئ او ناشکرئ په وجه د شهزاده کامران د لاسه وزیر خان اووژلے شو۔ نو د دے نه پس په افغانستان کښے د سدوزو او بارک زو تر مینځه د اقتدار د پاره کشمکش شروع شو۔ او په ١٨٢٦ء کښے امیر دوست محمد خان په کابل قبضه اوکړه۔ او په قلاره قلاره په ټول افغانستان د دے کورنئ حکومت قائم شو۔

د محمد زو دا حکومت په دوه دورونو کښے تقسیمیږی۔ د اول دور بانی امیر دوست محمد خان وو۔ چه د سردار پائنده خان کشر ځوئے وو۔ د دوست محمد خان په

کورنئ کښې د افغانستان حکومت د سنه ۱۹۲۹ء پورې قائم وو. دویم دور د سنه ۱۹۲۹ء نه شروع کیږی. په دغه کال د بچه سقه د انقلاب په موقع نادرشاه مرحوم بچه سقاته شکست ورکړو. او په کابل ئې قبضه اوکړه. او د چپلې تخت نشینئ اعلان ئې اوکړو. د نادر شاه مشرنیکۀ سردار سلطان محمد خان وو. چه د سردار پائنده خان ځوئے او د امیر دوست محمد خان ورور وو. او د خپلو ورونو سره به په پیښور کښې اوسیدلو. دا ورونه په سرداران پیښور هم مشهور وو.

د بارک زو اکثر خلق ګډ بانډ دی. ځنې په کښې زمینداری هم کوی. لکه چه د بارک زو د شجرې نه څرګندیږی. اڅک زی هم د بارک زو یوه څانګه ده. ولې احمد شاه د بارک زو د طاقت کولو په غرض دا څانګه د بارک زو نه بیله کړی وه. او دوئ خان له جدا تپه مقرر کړی وه.

په ابدالیانو کښې «نور زی» هم د بارک زو هومره دی. ولې دوئ د ملک په قبلئیزو غزونو او د سیستان په ریګستانونو کښې ځائے په ځائے خوارۀ وارۀ اباد دی. له دے کبله د دوئ طاقت او اقتدار د بارک زو نه کم دے. دا خلق هم اکثر ګډ بانډ دی. د «سبزوار» غرونه د دوئ په علاقه کښې دی.

«علی زی» په زمینداور کښې اباد دی. او د کرکیلے کار کوی. د دوئ په خوا کښې علیکوئی استوګن دی.

د زمینداور په سویل کښې اسحاق زی اوسیږی. د دوئ کسب زمینداری او شپون توب دے. د ابدالیانو په علاقه کښې نمرامتی، قندهار، ګرشک او فراه لوئے لوئے ښارونه دی.

**بریڅ**:- اکثر د شوراوک په علاقه کښې اوسیږی. د دوئ قطب ته درانی پراتۀ دی. سویل ته ئې بلوچ اباد دی. نمر خاتۀ ته ئې د خواجه عمران غرونه دی. او قبلې ته ئې صحرا ده. د شوراوک په علاقه کښې د لورے سیند بهیږی. د دے په وجه دا علاقه زرخیزه ده. د بریڅو علاقه به اندازاً شپیتۀ مربع میله وی[1].

**اورمړ**:- د شجرو او روایاتو مطابق اورمړ د شرخبون ځوئے او د سړبن نمسے دے. نامه عمردین او په اورمړ مشهور دے. په موجوده وخت کښې اورمړ اولس په وزیرستان

---

[1] د هندوستان مشهور نواب حافظ رحمت خان او د سنه ۱۸۵۷ء د جنګ ازادئ لوئے میړۀ جرنیل بخت خان د بریڅو د قبیلې افراد وو.

(کانیګرم) د افغانستان په علاقه لهوګراو د پیښور ضلع په دریو کلیو (ارمړ بالا، اورمړ میانه، او اورمړ پایان) کښې اباد دی[1] « اورمړ » خپله یو خاصه ژبه لري. چه د پښتو ژبې سره څه مشابهت نهٔ لري. د اورمړ دا پخوانئ ژبه د کانیګرم اورمړ تراوسه د خپل ځان سره خوندي ساتلې ده. او په خپل مېنځ کښې پرې خبرې کوي. ولې د لهوګر (افغانستان) او پیښور اورمړ دا خپله پخوانئ اصلي ژبه هېره کړې ده. د اورمړ د اصلي ژبې د موجوګئ نه څنګ عالمان دې عقیدې ته مائل دي. چه اورمړ به شاید د دې ملک د ډیرو پخوانو استوګنو اخلاف وي. او د پښتنو د ګوانډ او یو ځائ استوګنې په وجه به ئې د پښتنو تهذیب و تمدن خپل کړې وي. ن زمانه کښې اورمړ په خوئ بوئ، عادتونو، دودونو دستورونو، ژبه، تهذیب او ثقافت کښې بېخ د پښتنو په شان دي. او په ظاهره کښې د دې خبرې هیڅ څه شواهد نهٔ معلومېږي. چه دا خلق به ګوندې د پښتون اولس نه بېل خلق وي. ولې د اصلي اورمړي ژبې موجودګي د دې قیاس مرسته کوي چه شاید دا ژبه د پخوانو آریائ قبائیلو د ژبو نه یو ژبه وي. د بده مرغه د اورمړي ژبې په حقله تراوسه په علمي رنګ کښې څه تحقیق او څېړنه نهٔ ده شوې. د دغه وجه ده چه د اورمړ اولس د اصلیت خبره په ملله کښې ده. او تر څو چه د دې ژبې په حقله یقیني معلومات نهٔ وي حاصل شوي تر هغې به په ملله کښې وي. د اومړو په حقله چه په اولس کښې څنې روایات مشهور دي هغه بالکل بې بنیاده دي. او د بایزید انصاري د مسلک سره د اختلاف په نتیجه کښې خوارهٔ شوي دي. زما په خیال کښې د پښتنو د بې شماره قبیلو په شان اورمړ هم د پښتنو یوه قبیله ده. البته د « شرخبون » په شجره کښې د دې قبیلې پیوند څه جواز او موزونیت نهٔ لري.



---

[1] امکان لري چه اورمړ اولس په پخوانئ زمانه کښې د مکران په ساحل هم استوګن وو. د دوئ په نامه د « اورماړا » بندر تر اوسه مشهور دے. ولې په موجوده وخت کښې دا اولس په بلوچستان کښې په لشت حساب دے.

سړبني قبائيل (ب) - د خرشبون (خیرالدین) اولاد -

(۱) یُوسف زی

# خرشبون بن سړبن بن قیس عبدالرشید




۱ه اولاد ئے ګګیاني ۲ه په اګره ورکښې او د اباسیند په مشرقي او غربي غاړه اباد دی۔ ۳ه په بونیر کښې اباد دی۔ ۴ه په دیر او پنجکوره کښې اباد دی ۔ ۵ه شجره ئے ځان له بیان شوی ده۔ ۶ه د درویزه د وینا مطابق د مور د آزار په وجه اولاد ئے نه کیږي شو ئے۔ ۷ه لږ دیر په چغرزو کښې شامل دی۔ ۸ه اولاد ئے د بټ په نوم عائشه زی یادیږي -

(یوسف زی)

# شجرہ نسب اکو بن یوسف



# شجره نسب د منډړ



(منډاړ)

# نسب نامه اتمان



(منڈیر)

# سدو بن اتمان

## سدو



(مندڑ)

# شجرہ نسب درے زا بن سدو بن اتمان



(مند ړ)

# نسب نامه رزړیازختر (بن مندړ بن شیخابن کند)



# سړبني قبائل - غوریاخیل (مهمند - داوٗدزی) شجره نسب غوریا بن کند بن خرشبونؒ بن سړبن



سربنی قبائل۔ **غوریاخیل (خلیل، څوکنی)**




سربنی قبائل **خویشکی محمدزی**



سړبني قبائیل -

## کاسي بن خرشبون

الوزی، ثمریانی، محمدزی، موسیخ، سنبرون، کهیتر، کومیار، شینواری، سام، سلت، همړ

شیخملي خیل، خوګاخیل، میرداد خیل، پیرو خیل، سنګو خیل، سرکي خیل، سلیمان خیل، خضر خیل

د خرشبون (خیرالدین) د درې واړو ځامنو (کند، جمند، کاسي) د اولاد شجرې بیان شوې . لکه چه د شجرو نه معلومیږي . د کند دوه ځامن وو . چه د یو نوم شیخا یا خوشی یا خابني وو . د ده اولاد شیخا خیل یا خابني خیل مشهور دے د بل ځوی نامه ئے غوریا وه - او اولاد ته ئے غوریا خیل ویلے شي -

**د خابني خیلو مهاجرت :-** لکه چه د خرشبون په حالاتو کښې مو ویلي دي . د پښتو خزانې د روایت مطابق خرشبون د خپل پلار سړبن او تره بیټ نیکه په اجازت د کسي غر نه د خپل اولاد سره تلے وو . او د ارغستان په حدودو کښې د غنډان او سور غر په خوا وشا کښې په هغه زمکه ډیره شوے وو چه د « غورے مرغه » په نامه یادیږي . د اخون درویزه د روایت مطابق هرکله چه پښتنو د قندهار او د خوا وشا زمکې په خپل مینځ کښې تقسیم کړې نو د ترینو برخه د کند او جمند یعني د خابني خیلو او غوریا خیلو ترمینځه اورسیدله . د دغه وجه وه چه په سبه بده کښې به د کند او جمند اولاد یو بل ته لاس نه شو ورکولے .

د روایاتو مطابق د کند په اولاد کښې د خوشي زمکه د ترینو سره نژدې وه . ځکه چه د خوشي زمکه د ارغستان د ویالې سره وه . او هغه د ترینو په خوا کښې وه . څه رنګ چه نن زمانه کښې هم پښتانه په خپل مینځ کښې په پوله پټي جنګونه کوي . د دغه شان په هغه زمانه کښې هم د ترینو او خابني ترمینځه په څه خبرو زړه بداوې پیدا شو . او د دوئ ترمینځه یو سخت جنګ اوشو چه په هغې کښې خابني خیلو ته لوئے زیان اورسید . او د دے په نتیجه کښې « خوشے » د خپلې زمکې نه په وتلو مجبور شو .

خوشے چه د خپلې زمکې نه بے ځایه شو نو په کډه غوریه خیلو ته راغے . او د هغوی نه ئے د استوګنې د پاره څه زمکه اوغوښتله ، ( د غوري زمکه د رود غزني په کڅئ کښې د سکور په خوا وشا کښې وه ) غوریه خیلو دوئ ته څه نابوده شان زمکه ورکړه . او خوشے په هغې اباد شو . څه موده پس د ډیرو بارانونو له کبله د غوزی ورشوګانے خرابې شوے . نو غوري چه کومه زمکه

خوشي ته ورکړی وه هغه ئ ترنه بیا اوغوښتله - ولې خوشی په هغ ټینګ شو. او په دې خبرې د « غوری او خوشي »، ترمینځه جنګ اوشو- خوشی په دې جنګ کښې هم اووهلې شو- او د ځپلې زمکې نه بې دخله کړې شو. د دې نه پس هغه ځ په کابل روان شو. په دې وخت کښې دګومل د لوری نه اتمان خیل هم راغلل او د خوشي سره یو ځائې شول او په شریکه د کابل په لور روان شول- د هغ ورځ نه د اتمان خیلو او خابنی خیلو ترمینځه پره جنبه اوګوندی قائمه ده- څه موده پس مهتری چه د څمند یوه څانګه ده - د ځپلو ورونو نه په څه خبره مرور شول - او دوئ هم د خابنی خیلو خوا اونیوله - د خابنی خیلو جمعیت په دې خلقو نور هم زیات شو.

دا خلق دکابل په اوږدو ورشو ګانو کښې ښهٔ آسوده شول - مال و اولاد ئې ډیرشو- خصوصًا یوسف او منډړ په مال او اولاد کښې د نورو نه زیات شو- د مال او اولاد دې زیات والی د دوئ قبائیلی طاقت نور هم اوځلولو - په دغه وخت کښې د تیمور په خاندان کښې مرزا ابوسعید حکمران وو - مرزا ابو سعید ځپل ځوئې مرزا الغ بیګ د کابل او غزنی د علاقو د ځپل طرف نه حکمران کړې وو- لیکن د مرزا الغ بیګ ځپله فوځی طاقت دومره نهٔ وو- چه په دې علاقوئې ځپلې قبضې ته دوام ورکړې وې- نو هغه د دې پښتنو نه د کومک خواست اوکړو- او د دې خلقو د هغ سره ښهٔ لاس اوکړو - مرزا الغ بیګ په کال ۱۴۶۹ء کښې د کابل او غزنی حکمران شوې وو- نو احتمال کیدې شي چه خابنی خیل وغیره پښتانهٔ به د کابل علاقې ته د پنځلسې صدئ د نیمې په خوا وشا کښې راغلی وی - الغ بیګ مرزا په کال ۱۵۰۱ء کښې وفات شو-

په ابتدا کښې مرزا الغ بیګ د پښتنو سره ښهٔ سلوک کولو. ځکه چه هغه به د ځپل تخت د حفاظت د پاره د دې پښتنو مرسته ضروری ګڼله - ولې د میرزا او پښتنو تعلقات تر ډیرې مودې خوشګوار پاتې نهٔ شول. او د دوئ ترمینځه یو جنګ اوشو - د دې وجه دا وه چه یوسف زی او منډړ د ځپل مال او دولت او اولاد د ډیر والی په وجه سرکښه وو- دوئ به دکابل د خوا و شا خلق ازارول - او د حکومت د قوانینو پرواه به ئې نهٔ ساتله - د دوئ دا سرکښی مرزا الغ بیګ تر هغه وخته زغمله چه د هغهٔ طاقت لا مضبوط نهٔ وو - ولې لږه موده پس د هغهٔ د جنګی لاندې ډیر چغتائی مغل راغونډ شول- دغه وخت مرزا دا ضروری اوګڼله چه د دې پښتنو دا طاقت ختم کړی. دغه وخت کښې مرزا د سیاست نه کار واخست- او په خابنی خیلو کښې ئې مخالفت پیدا کړو- د پښتنو ترمینځ اکثر جنګونه یا په زمکو وی او یا د ښځو په معاملاتو ـ ګګیانو او یوسف زو ترمینځه هم د یوې ښځې په سر دښمنی پیدا شوی وه- مرزا د دې مخالفت ته هوا ورکړه- اوګګیانی ئې د یوسف زو منډړو برخلاف د ځان په پره کړل - او د دوئ په مرسته مرزا الغ بیګ په خابنی خیلو حمله اوکړه- د دوئ ترمینځه

چه په کوم ځائ جنګ شوے دے هغه هم په "غوړه مرغه" یادیږی - "مرغه" په پښتوکښے ورشو یا چراګاه ته وئیلے شی - او د "غوړے مرغے" نه مراد سرسبزه او اباده ورشو ده. په دے جنګ کښے خانبی خیل بریالی شول - او مرزا دے خبرے ته مجبور شو چه هغه دا خلق (پښتانهٔ) په احسان او ښهٔ سلوک ایل کړی. په دے غرض هغهٔ د خانبی خیلو د پاره د یو لوے دعوت انتظام اوکړو. او د جرګے د پاره ئے د دویٔ مشران اوبلل. دا مشران په شمیرکښے نهه سوه وو. د پښتنو د دستور مطابق د جرګے په وخت کښے دا ټول مشران بے وسلے وو. صرف د یو سړی سره چه محمود نومیدهٔ او د محمود چغرزی څوئے وو په بره یوه چاړهٔ وه. د مرزا په نیت کښے د اول نه څه فساد نهٔ وو. ولے په دے اثنا کښے د ګګیانو یو مشرچه جنګانومیدهٔ مرزا ته دا صلاح ورکړه چه دومره مشران او د سر سړی به بیا یو ځائے او نهٔ موے. د دویٔ غم غوځ کړه. دے مشورے مرزا هم غدارئ ته اماده کړو. او د دے خلقو د وژلو اراده ئے اوکړه. او دویٔ ئے د جرګے په ځائے کښے قید کړل. دغه وخت محمود خیلو مشرانو ته اووے چه که موخوښه وی نو هم په دے چاړهٔ د مرزا کار خلاصوم. ولے مشرانو هغه منع کړو. او ورته ئے اووے چه موږ د مرزا نمک خوړلے دے. د پلینیے نه تیښته نشته. څه چه خدائے ته منظوره وی په هغ رضا یو. د دے نه پس مرزا د دویٔ د وژلو تابیا اوکړه. دغه وخت ملک سلیمان چه د ملک احمد ترهٔ وو. د ټولے جرګے د طرف نه مرزا ته دوه سواله اوکړهٔ. هغهٔ اووے چه زموږ د وژلو نه پس زموږ وارهٔ وارهٔ او زنانه مهٔ قید وه. بلکه اجازت ورکړه چه دویٔ چرته تلل غواړی هلته دِ لاړ شی. او بل دا چه ملک احمد مهٔ وژنه. مرزا دا دواړه سوالونه اومنل او ورته ئے اووے چه زما دا خیال وو چه تهٔ به د ځان د خلاصی د پاره او یا د سل دوه سوه نورو مشرانو د پاره سوال کوے. د دے په جواب کښے ملک سلیمان اووے چه زما سر د نورو عزیزانو نه زیات نهٔ دے. چه دویٔ مری نوزهٔ دِ اول مړشم.

غرض د دے نه پس مرزا دا ټول مشران بے د ملک احمد او یو څو نورو مشرانو نه اووژل. او څه وخت چه هغه د دے خونړئ کامیابئ نه اوزګار شو نو د دویٔ د ښخولو حکم ئے اوکړو. د کابل نه په قطب د سیاه سنګ غر په لمنه کښے یوه مقبره د شهیدانو په مقبره مشهوره ده. وئیلے شی چه په دے مقبره کښے دا خلق دفن شوی دی. دلته کښے د شیخ عثمان ملیری روضه هم ده. چه په هغه وخت کښے یو بزرګ او نیک سړے وو. او د خانبی خیلو پیر وو. د دهٔ مقبره تراوسه د ناڅینو زیارت ګاه دے. د دے خونړئ واقع یقینی تاریخ معلوم نهٔ دے. لیکن چونکه دا واقعات دالغ بګ مرزا د ذات او د هغهٔ د ... سره وابسته دی. نوکه چرے په حقیقت کښے

دا یې واقعات شوي وي نو موږ په قیاس دا ویلې شو چه دا پیښه به شاید چه د سنه ١٣٨٠-٩٠ء ترمینځه مینځه یو کال کښې شوي وي۔

د دې نه پس غابښي خیل او د هغوی حلیف قبائیل د ملک احمد په مشرۍ کښې د کابل نه مخ په ننګرهار را روان شول۔ ترکاڼي په لغمان کښې پاتې شول۔ او یوسف زي مهمنزي ننګرهار ته راغلل۔ او دلې میشته شول۔ څه موده پس د یوسف زو او مهمنزو ترمینځه یو سخته انښته اوشوه۔ چه په نتیجه کښې مهمنزي ډیر تالا شول۔ میدان یوسف زو وګاټه۔ ولې بیا د دوئ ترمینځه روغه اوشوه۔ او یوسف زو ننګرهار مهمنزو ته پرېښود۔ او په خپله د پیښور په لور راروان شول۔ په دې دوران کښې ګګیاڼي چه د یوسف زو په مقابله کښې ئې د مرزا الغ بیګ مرسته کړې وه۔ د مرزا د لاسه د کابل نه په وتلو مجبور شول۔ او هغوی هم ننګرهار ته راغلل۔

د روایاتو مطابق په دغه ورځو کښې په وادۍ پیښور، باجوړ او ملحقه علاقو کښې د دله زاک پښتانهٔ اباد وو۔ د پیښور په علاقه کښې د دله زاکو د موجودګۍ تائید د بابر د بیان نه هم کیږي۔ په دې ورځو کښې د هشنغر په علاقه کښې د ګیان یا دهقان اوسیدل۔ چه د سوات د سلطان رعیت وو۔ یوسف زي د خیبر په لار د پیښور علاقې ته راښکته شول۔ او د سفید سنګ په مقام ئې د دله زاکو د مشرانو سره جرګه اوکړه۔ او د هغوی نه ئې د استوګنې د پاره د دوآوې علاقه زمکه اوغوښتله۔ دله زاکو د دوئ سره ډیره مهربانی اوکړه۔ او دوئ ته ئې د استوګنې د پاره د دوآوې علاقه ورکړه۔ چه د پیښور په علاقه کښې یوه زرخیزه ټکړه ده۔ ملک احمد د خپلې قبیلې د لورې نه د دله زاکو شکریه ادا کړه۔ ولې دا ئې هم اوویل چه زموږ ډیر خلق روستو پاتې دې او د هغو ټولو د پاره به د دوآوې زمکه کافي نهٔ شي۔ د دې په جواب کښې ورله دله زاکو اوویل چه که دوآوه د تاسو د پاره کافي نهٔ وي نو د ‹‹ دانش کول او امبار›› کځئ د باجوړ پورې تاسو نیوې شئ۔ او د هشت نغر علاقه هم تاسو د دهقانانو نه اخستې شئ۔

د دې نه پس یوسف زي او مندړ په دوآوه کښې اباد شول۔ او په قلاره قلاره د قبیلې ټول تار په تار خلق یوځائې ته راغونډ شول۔ او دغه شان دا علاقه د دوئ د پاره ناکافي شوه۔ او څه رنګ چه دوئ ته ورانده د هشت نغر د نیولو اشاره شوې وه۔ چه د دوئ طاقت زیات شو نو دوئ د هشت نغر علاقه د دهقانانو نه په زور اونیوله۔ او دلې هم اباد شول۔ د دې نه پس دوئ دله زاکو سره هم اوبهٔ خړې کړې۔ او د چارسدې په نزر ځاتهٔ د مردان د میدانی علاقې د نیولو په تکل شول۔ دغه وخت کښې د یوسف زو څنې خلق د باجوړ په لور هم لاړل۔ او په وادۍ لاشوړه ئې قبضه اوکړه۔ بلکه د دې نه هم ورانده شول۔ او جندول لکه ترپنځکوړې

اوغزیدل۔

په دغه ورځو کښې د تیمور د کورنۍ طاقت ځنې په زوال وو۔ او د پښتنو ترین قبیلې ډیر اقتدار موندلې وو۔ د دے په نتیجه کښې غوریه خیل هم د دوئ د لاسه په مهاجرت مجبور شول۔ او ځنې په قطب په خابنې خیلو پسې را روان شول۔ د دوئ نه وړاندے د ننګرهار په علاقه کښې ګګیانۍ او مهمنزی اباد شوی وو۔ ترکانۍ په لمغان کښې میشته وو۔ چه غوریاخیل هم دے علاقے ته راغلل۔ نو د دے قبائیلو سره ئې ماتے ګوډے پلینې شوے۔ د غوریاخیلو په راتلو ترکانو او ګګیانو د خپل ځان د پاره د نوے علاقے تلاش شروع کړو۔ ترکانۍ د ډیرے مودے نه د باجوړ په طمع وو۔ په دغه ورځو کښې دوئ خپله یو ډله د حالاتو د جاج اخستلو په غرض باجوړ ته اولیږله۔ ګګیانو هم د دوئ په سیالئ کښې خپل سړی اولیږل۔ ولے د ترکانو د لاسه ئې ماتې اوموندله او بیرته راغلل۔

د ګګیانو طمع چه د باجوړ نه لنډه شوه نو د مهمنزو په صلاح ئې خپل سپین ږیری او مشران یوسف زو ته په ننواتې ورا ولیږل۔ او د ملک احمد نه ئې د خپلے استوګنے د پاره زمکه اوغوښتله۔ ملک احمد یو هوښیار او مدبر سړے وو۔ د دله زاکو د طاقت په مقابله کښې د هغه دا خواهش وو چه د خابنې خیلو ترمینځه مضبوط احتیاط قائم کړی۔ په دے غرض د قبیلے د مشرانو په مشوره هغه د ګګیانو ننواتې اومنله۔ او دوئ ته ئې د استوګنے د پاره د دوآوے زمکه ورکړه۔ او د مهمنزو سره ئې د هشت نغر وعده اوکړه۔

ګګیانو ته چه د استوګنے د پاره زمکه په لاس ورغله۔ نو دوئ ډلے ډلے او ټپے ټپے د کړپے په لار دوآوے ته راغلل۔ او هورے اباد شول۔ لکه چه وړاندے وئیلی شوی دی یوسف زو د هشتنغر علاقه د دهقانانو نه نیولی وه۔ دا دهقانان د خپل مشر میر هنده په مشرئ کښې د دره موره په لار سوات ته راغلل۔ او د تانړې په خواوشا کښې استوګن شول۔ دلته د میر هنده زمکے وے سواتیانو د یوسف زو د متوقعو حملو د مدافعت په غرض د ملاکنډ دره هم اونیوله۔ او د شاه کوټ په دره ئې هم قبضه اوکړه۔ او په دے ډول د سوات په لور د یوسف زو د راتلو لارے بندے کړے۔ د وعدے مطابق یوسف زو د هشت نغر علاقه مهمنزو ته ورکړه۔ او مهمنزی په دے علاقه کښې اباد شول۔

ګګیانۍ چه په وادۍ کښې میشته شول۔ نو د دله زاکو سره ئې داسے سپک سلوک روا هنست چه ملک احمد هم پرے ناراض شو۔ او د دوئ د مرستے نه ئې لاس واخست۔ د دغه وجه وه چه د دے نه پس د دله زاکو او ګګیانو ترمینځه د "کل بیلے" په مقام چه د

داوُدزو په علاقه کښې يوکلے دے په يو جنګ کښې ګګيانو د دله زاکو دلاسه سخته ماتے اوموندله۔

دګګيانو دے شکست ملک احمد بيا د قبائيلي اتحاد په لور مائل کړو۔ او هغهٔ د دله زاکو سره قطعي فيصله کول غوره اوګڼل۔ د دے وجه دا هم وه چه د دله زاکو دلاسه يوسف زی هم تنګ وو۔ چنانچه هغه ټول يوسف زی، مندړ، ګګياني، مهمنزی، اتمان خيل اوګدانه په يو صلاح کړل۔ او ددے ټولو نه ئے يولوئے لښکر مرتب کړو۔ دله زاک هم ددوئ جنګ ته تيار شول۔ د دواړو قبيلو ترمينځه دا جنګ د کاټلنګ او شهباز درے ترمينځه شوے وو۔ ددے جنګ زور ډکدر په خوړ کښې وو۔ د اخون درويزه مطابق په دے جنګ کښې اتمان خيلو ډيره مړانه ښکاره کړی وه۔ او ددے وجه يو قسم دڅرمنے ډالونه وو چه د هغې په شان به تيرانداز زاروان وو۔ دله زاک دلنګر کوټ دخوا نه جنګ ته راووتل۔ درويزه نقل کوی چه د ټولو نه اول د علی اسمٰعيل زی څوی چه بټرين نوميدهٔ۔ دخوړ نه اوداننګل او د «زنګی» دله زاک څوټے ئے مړ کړو۔ ددے نه پس لاس په لاس جنګ شروع شو۔ ولے د دله زاکو پښے اوښوئيدلے۔ او هغوی تيښته اوکړه۔ يوسف زی هم ورپسے وو۔ يوسف زو د سوئيل په لور د دله زاکو لاره بنده کړی وه۔ دغه وجه وه چه دوئ دلنډی سيند نه په سوئيل خپلو عزيزانو ته لاړ نهٔ شول۔ بلکه په اباسيند پورے شول۔ ددے جنګ تاريخ معلوم نهٔ دے۔ البته قياس کيدے شی چه دا جنګ به د سنه ۱۵۱۹ء نه پس او ۱۵۲۵ء نه اول ترمينځ يو کال شوے وی۔

لکه چه وړاندے وئيلے شوی دی سواتيانو د يوسف زو د حملے دخطرے په وجه د سوات په لور ټولے درے لکه درهٔ موره، ملاکنډ، شاه کوټ او چراټ وغيره نيولے وے۔ په دے ورځو کښې د سوات سلطان اويس نوميدهٔ۔ چه د يوسف زو د غلے نه دحفاظت په غرض ئے د ملک احمد خور واده کړی وه۔ د سلطان اويس صدر مقام منګلور وو۔ ولے د ملک احمد خور مړه شوی وه۔ او د سلطان اويس سره د يوسف زو د حملے خطره پيدا شوی وه۔ او د هغهٔ دا ويره هم بے ځايه نهٔ وه۔ ځکه چه د يوسف زو، مندړو ورځے اوس ښے شوے وے۔ په دله زاکو هغوی فتح بيا موندلی وه۔ او د سوات د تجارت په وجه دوئ مالدار شوی هم وو۔ ولے د تجارت سره سره دوئ د سوات د ښکلا اوزرخيزئ نه هم ښهٔ خبردار وو۔ دغه وجه وه چه ددے ښکلی علاقے د نيولو ډير خواهشمند وو او چه موقع ئے بيا موندله نو هيله ئے بيا او نهٔ کړه۔

یوسف زی چه د دله زاکو د جنجال نه اوزګار شول نو د سوات د فتح په په ګکل شول. اود « دره مورهٔ » سره ديره شول. دا دره دهقانانو ښه مضبوطه کړی وه. اوديوسف زو هرا قدام به ئې ناکامولو. د وه میاشتې داسې تیرې شوې. اخر د یوسف زومشرانو په سواتیانو یو چل اوکړو. سواتیانو د مورې دره مضبوطه کړی وه. او یوسف زی هم ددوئ مقابلې ته پراته وو. د ملاکنډ دره هم د سلطان اویس په ماتحتۍ کښې سواتیانو نیولې وه. ولې دوئ د یوسف زو د حملې نه بې غمه وو. یوسف زی چه د دې نه خبر شول نو شپه په شپه ئې خپل لښکر د ملاکنډ په لور اولیږلو. په دغه شپه دیوسف زو زنانهؤ هم لوئې کار اوکړو او هغه دا چه دوئ د خپلو نادینهؤ په صلاح ټوله شپه سندرې او بدلې ویلې. او په خپلو سندرو کښې به ئې دا ویل چه سواتیانو ا ځان ټینګ کړئ سبا ته به زمونږ شاه ځلی درځي. ښه ځانونه سمبال کړئ. هسې نه چه څه ارمان مو په زړه کښې پاتې نهٔ شي. دې خبرو سواتیان یوړل. هغوی خپل ټول طاقت هم دلې جمع کړو. بل لور ته یوسف زو شومه دم په ملاکنډ حمله اوکړه. او د سواتیانو لښکرئې په اوده لاندې کړو. سواتیان دې ناڅاپي حملې ته ټینګ نهٔ شول. او د تاڼې په لور اوتښتیدل. یوسف زی په ملاکنډ واوریدل. دا خبرچه « مورې » ته اورسید نو « میر هنده » هم تاڼې ته لاړ او هلته د سلطان « اویس » سره د یوسف زو د تم کولو په تابیا کښې لګیا شول. ولې دغه وخت د یوسف زو زور ایسارول ددوئ د وس نه بهر شوی وو. د دې نه پس یوسف زو د کوز سوات په زمکو قبضه اوکړه. دې قبضې د برسوات د قبضې د پاره هم دوئ ته لار اوزګاره کړه. او په قلاره قلاره دوئ ټول سوات سره د پوړن چکسیر، کانړا او غوربند اونیولو. په دې پسې یوسف زو د تالاش علاقه هم اونیوله. دا علاقه اول په باجوړ کښې شامله وه. وائي چه د تالاش په جنګ کښې مزید نوئې یو مندړ د کاټکلې په مقام په دشمن اس ور اوزغلولو. او د کندې څنګ ئې دولس نیم ګزه ټوپ اوښلو او دشمن ئې په نیزه اوپیرلو. د دې نه پس د نواګئ او ارهنګ برهنګ پورې علاقه دوئ اونیوله.

یوسف زو چه د خپلو حلیفو قبائیلو په مرسته د دله زاکو او سواتیانو نه علاقې قبضه کړې نو د ملک احمد په صلاح، « شیخ ملی » چه د مندړ په اولس کښې د « پیرک » په ذیله کښې وو. او دا ابتدا نه د ملک احمد سره په هره سخته نرمه کښې ملګرې وو. د دې نیولو شوو علاقو د تقسیم تابیا شروع کړه. په مختلفو قبائیلو کښې د دې دومره وسیع علاقې ویش

چه په تهوله داوډه، هشت نغر، دلنډی سیند په قطب، د اباسین تر غاړے پورے سیے، سوات، بونیر او د باجوړ په څه حصه مشتمله وه. د ډیر احتیاط، غور وفکر محنت او تدبر کار وو. او دا یو داسے سړی کولے شو چه ډیخه دلوئے همت، وسیع تجربے او د قبائیلو د رسم ورواج او د دے وسیع علاقے د حالاتو نه ښه خبردار وے - او شیخ ملی د دے عظیم کار د پاره ډیر موزون وو. د شیخ ملی په دے ویش کنبے چه کوم انتظامی قابلیت او تدبر نه کار اخستے شوے دے د هغے ثبوت هم دغه دے چه دا تقسیم په پښتون غونډے قام کنبے بے د څه جګړے، خفګان او تنازع نه تر سوو نو کالو پورے په کامیابئ سره قائم وو - او متعلقه خلقوته ورته هیڅ څه قسمه شکایت نهٔ وو پیدا شوے - د شیخ ملی د دے تقسیم تاریخ هم معلوم نهٔ دے - قیاسًا دا ویلے شو چه دا به د ملک احمد په ژوند کنبے غالبًا د سنه ۱۵۳۰ء په حواوشا کنبے شروع شوے وی - او د دے تکمیل به د خان کجو د مشرئ په وخت کنبے شوے وی - دا تقسیم په داسے هوښیارتیا شوے دے چه چرته د دوؤ زورورو قبیلو ترمینځه د جنګ جګړے د پیښیدو خطره محسوس شوی ده. نو دوئ د جائیداد په مینځ کنبے څه زمکه د ڤیرئ په نوم ستانه دارو ته ورکړے شوی ده. او په دے دستور دا زورو خلق د یو بل نه لرے شوے - او په یو بل د بلوسے نه بچ کړے شوی دی -

د شیخ ملی د تقسیم له مخه دواوه د ګګیانو اورسید له - هشت نغر د مهمنزو شو- اتمان خیلو ته دا رنګ برنګه علاقه او د سوات او د سے ترمینځه په قطب یوه خطه ورکړے شوه - وروستو په شپاړسمه صدئ کنبے د اتمان خیلو د سے په علاقه کنبے ختیک هم ننوتل. په دے تقسیم کنبے ګدانو ته چه د یوسف زو سره تړل شوی وو - د قطب په لورغرښیزه علاقه ورکړے شو.

په هغه زمانه کنبے په دے ټولو علاقو کنبے د سوات علاقه ډیره زرخیزه او اباده وه - د غه وجه وه چه د شیخ ملی په تقسیم کنبے یوسف زو او مندړو دواړو اولسونو ته په سوات او سمه کنبے زمکے ورکړے شوی دی - او د دے قیاس مرسته د دے نه کیږی چه د ملک احمد او شیخ ملی قبرونه په سوات کنبے دی - او دواړه مشران د مندړ په ټانګه کنبے دی - د ملک احمد قبر په اله ډنډ کنبے او د شیخ ملی قبر په غور بنډی کنبے دے - ولے داسے معلومیږی چه د شیخ ملی په دے تقسیم کنبے څه موده پس بیا تبدیلی راغلی ده - او د سوات، پنجکوړے، بونیر او ټوله غرښیزه علاقه د یوسف زو رسیدلی ده - او مندړ سے ته راغلی دی - دا قیاس د خان کجو د قبر نه مرسته موی - د خان کجو قبر د بډوی نالے په غاړه د صوابئ مانیرئ ترمینځه کجو غونډئ ته

مخامخ پروت دے۔ نن ورځ په سوات، بونیر او نورہ غرنیزه علاقه کښے دمندړو یو کلے هم نشته۔ البته د مندړو په علاقه کښے د یوسف زو درے کلی اباد دی۔ چه په "بابوزی، شموزی او متہ" مشهور دی۔ دا کلی د سوات په پوله اباد دی۔ اګر ددے نوی تقسیم له مخه به په هغه زمانه کښے مندړو ته زیان رسیدلے وی۔ ځکه چه د دوئ داوسنئ پوله علاقه په هغه زمانه کښے داوبو د نیشتوالی له کبله نابوده او غیر اباده وه۔ او ددے په مقابله کښے غرنیزے علاقے د ښے اب و هوا او د اوبو د ډیر والی له کبله د جنت په مثال دے۔ ولے په نن زمانه کښے د مندړو علاقه د نهرونو په برکت په ټول پاکستان کښے اباده او زرخیزه ده۔

لکه چه وړاندے ویلے شوی دی۔ په ابتدا کښے ملک احمد ته د دله زاکو د مشرانو له خوا د "دانش کول" او امبهار د علاقو نیولو پیشکش هم شوے وو۔ او ددے جرګے نه پس دیوسف زو مندړو ځنے خلق امبار او بیا د جندول په لور تلی وو۔ په دغه ورځو کښے په دے علاقو کښے هم دله زاک میشته وو۔ او د باجوړ په دله زاکو کښے ملک "هیبو" چه د عمرخیلو په ځانګه کښے وو۔ دلوئ اقتدار خاوند وو۔ ملک هیبو دے نابلی میلمنو ته په ارت زړه هرکلے اونه وے۔ او په باجوړ کښے دوئ ته زمکے ورکولو ته تیار نه وو۔ ولے دا نابلی میلمانه خو هم عزمیان وو۔ دوئ د خلیلو نه دکومک خواست اوکړو۔ چه په دغه ورځو کښے په ننګرهار کښے د خپلو ورونو عزیزانو سره په جګړو کښے بوخت وو۔ خلیل د دوئ په مرسته اودریدل۔ بل طرف ته ملک هیبو هم خپل طاقت ته غاوره وو۔ او په خپله خبره ټینګ وو۔ په دغه وخت کښے مهمند چه د غوریه خیلو یوه مهمه ځانګه ده۔ او ترکانړي چه د خاښی خیلو زیله ده۔ د ملک هیبو او د یوسف زو خلیلو ترمینځه د ثالثئ او جرګے په نیت باجوړ ته راغلل۔ او د طرفینو سره ئے جرګے مرکے اوکړے۔ ولے دا جرګے کامیابے نه شوے۔ د ملک هیبو دا خیال وو چه دا ثالثان به د مدعیانو په جګړه کښے د چا طرفداری اونه کړی۔ نو هغه د خلیلو او یوسف زو سره جنګ ته تیار شو۔ ولے ترکانړي او مهمند غیر جانبدار پاتے نه شول۔ بلکه د خلیلو او یوسف زو په مرسته کښے د ملک هیبو سره اوجنګیدل۔ په جنګ کښے د برهان نومے یو ترکانړي د لاسه ملک هیبو اووژلے شو۔ او ددے ملک هیبو زغره د مندړو میرجمال نومے یو ملک په مړونی د هغه نه اوویستله۔ او د ځان سره ئے سمبال کړه۔ ویلے شی چه دا زغره تر ډیرے مودے په شیردره کښے د میرجمال په کورنئ کښے محفوظه وه۔ ددے جنګ په نتیجه کښے یوسف زی او خلیل په باجوړ کښے میشته شول۔ ولے لږه موده پس د خلیلو او یوسف زو ترمینځه جنګ اوشو۔ چه په هغ کښے خلیل بریالی شول۔ او یوسف زو ماتے اوموندلے۔ یوسف زی چه په باجوړ کښے مات شول۔ نو

د ملک احمد نه ئے د مرستې خواست اوکړو ـ ملک احمد دا نهٔ غوښتله چه په باجوړ کښې دِ خلیل دومره طاقت ور شي چه د یوسف زو د پاره تر مستقله خطره پیدا شي ـ په دے غرض هغهٔ د باجوړ د یوسف زو امداد ته ملا اوتړله ـ ولے د طاقت د استعمال سره ئے د سیاست نه هم کار واخست ـ او هغه میر جمال ئے چه د ملک هیبو نه ئے په مړونی زغره ویستلے وه ـ د ملک هیبو ځامنو ته په ننواتې اولیږلو ـ او د هغو نه ئے د خلیلو په مقابله کښې د مرستې خواست اوکړو ـ د ملک احمد دا تدبیر کامیاب شو ـ د ملک هیبو ځامنو نه صرف د پلار سپکاوے دوئ ته او بخښلو بلکه د دوئ سره ئے د خلیلو مقابلے ته هم ملا اوتړله ـ یو طرف ته میر جمال او د ملک هیبو ځامنو خپل لښکر جمع کړو ـ او بل طرف ته ملک احمد د ګنداؤ او پنډیالئ په لاره په دانش کول تیر شو ـ او نواګئ ته اورسید ـ د نواګئ سره د دوئ او د خلیلو مقابله اوشوه ـ په جنګ کښې خلیلو ماتې اوموندله ـ او د دوئ وارهٔ زاړهٔ او زنانه د یوسف زو په لاس کښې بندے شوے ـ اخر د ملک هیبو ځامنو ـ ملک احمد او میر جمال په خپلو کښې جرګه اوکړه ـ او د خلیلو بندیان ئے په دے شرط پریښول ـ چه خلیل به د باجوړ نه بیخي په کډه ځي ـ او په خپل ژوند کښې به دے طرف ته بیا اسره او نهٔ کړي ـ خلیلو دا شرط اومنلو ـ او د باجوړ نه اووتل ـ د باجوړ په څه حصه کښې یوسف زي اباد شول ـ او په څنې علاقو کښې لا هغه شان دله ذاک اباد وو ـ د باجوړ دا جنګ د راورټي د خیال مطابق د سن ۱۵۱۴ء په خواوشا کښې د دے قبائیلو د مهاجرت اغاز وو۔

د غوریه خیلو د پاره چه د باجوړ څخه بنده شوه ـ نو دوئ هم د غابښي خیلو په چاله روان شول ـ او د ننګرهار نه د خیبر په لاره د پیښور علاقے ته راښکته شول ـ دا علاقه لا تر دغه وخته د خیبر نه د هیر اباد پورے د دله زاکو په قبضه کښې وه ـ خلیلو مهمندو[1] هم د دله زاکو نه د استوګنے د پاره زمکه اوغوښتله ـ ولے دله زاکو چه کومه نیکي د یوسف زو سره کړې وه د هغې سبق ورته لا هغه شان یاد وو ـ نو دوئ ته ئے بیخي انکار اوکړو ـ خلیلو مهمندو په دے موقع د مرزا کامران نه د مرستې خواست اوکړو ـ مرزا کامران په دے غرض چه د خپل ورور همایون په مقابله کښې دا طاقتورے قبیلے احسان مندے کړي ـ او د دوئ په ذریعه د همایون د حملو نه ځان بچ کړي ـ د دوئ مؤثر امداد اوکړو ـ د دے امداد په برکت خلیل، مهمند د دله زاکو په مقابلے کښې کامیاب شول ـ په دے علاقه د خلیلو مهمندو د قبضے څه

---

[1] مهمند د غوریه خیلو یوه مهمه څانګه ده ـ بابر چه په کال سن ۹۱۳ھ کښې د غلجي پښتنو په مهم تلے وو ـ نو هغه وخت دے د مهمندو ذکر هم کوي ـ په دغه ورځو کښې مهمند د مکوره په خواوشا کښې اباد وو ـ د دے بیان نه د مهمندو د مهاجرت تصدیق کیږي۔

یقیني تاریخ معلوم نه دے لیکن د روایاتو مطابق چونکه په دے علاقه دوئ د مرزا مران په مرسته کامیاب شوی وو - نو دا ویل به بے ځایه نه وی چه دوئ به په دے علاقه د سنه ۱۵۳۰ء او سنه ۱۹۴۵ء په مینځ مینځ کښے قبضه کړی وی۔

دا سے معلومیږی چه خلیل چه د خیبر په لاره دے علاقے ته داخل وی۔ نو د دوئ او دا فریدو تر مینځه هم شاید چه قریبي تعلق پاتے شوے دے - ځکه چه د خلیلو مشران چه وروستو په اربابانو مشهور شول - دا فریدو د خوئ بوئ او لارو چارو نه په ښه شان خبردار وو۔او د دے قیاس مرسته کوی چه دواړه قبیلے په قریبي تعلقاتو کښے ګنډلی پاتے شوی دی۔ دغه وجه ده چه د مغلو په وخت کښے او بیا د دوئ نه وروستو د سیکانو او بیا د انګریزانو د حکومت په ابتدا کښے به هم دا فریدو او د حکومت ترمینځه خبرے اترے د دے اربابانو په ذریعه کیدلے

**د خابني خیلو او غوریه خیلو تعلقات** :- د پیښور په کڅئ کښے اباده او زرخیز خطه د خلیلو مهمندو په قبضه کښے وه۔ د ګندا و لاره هم د مهمندو په علاقه کښے وه۔ او په دے لار به هم دوئ محصول وصولولو۔ د دے نه علاوه د لال پورے نه ښکته په سیند کښے په جالو به هم د دوئ محصول کړه وو۔ د دے نتیجه دا شوه چه دا دواړه قبیلے په لړه موده کښے ډیرے شتمنے شوے ۔ بل لوری ته د دهشت نغر او د دوآوے غوندے علاقے هم د دوئ په خوا کښے وے ۔ د خپل دولت او سرکښئ په نتیجه کښے دوئ دے علاقے ته هم سترګے خړے کړے ۔او د دے نه علاوه د یوسف زو په علاقه به ئے هم بلوسه کوله۔ په دے ورځو کښے د یوسف زو مندړو مشر ملک خان کجو وو ۔ هغهٔ به دے حالاتو ته په سړه سینه کتل ۔ولے د دوئ مقابلے ته ئے غاړه نه کیښودله۔ د هغهٔ دا خیال وو چه د غوریه خیلو په مقابله کښے به شاید چه مهمنزی د دوئ سره مرسته او نهٔ کړی۔ دغه وجه وه چه هغه د یو موزونے موقع په انتظار کښے وو۔ دا موقع هغهٔ ته ډیر زر په لاس ورغله۔

واقعه دا سے وه چه د ګګیانو یو ملک چه د خپلے پرهیزګارئ په وجه د ډیر احترام خاوند وو. یوه ورځ پیښور ته د اروان وو۔ چه د خلیلو په یو کلی کښے په جماعت کښے ئ دمانځه په وخت کښے خلیلو او وژلو۔ خان کجو د دے ملک د قتل نه فائده واخستله۔ او د خابني خیلو د هرے تپے نه ئے لښکر او غوښتو۔ او د غه شان ئے یو عظیم لښکر تیار کړو۔ په دے لښکر کښے مهمنزو ، ګګیانو ، اتمان خیلو ، ګدانو تر دے چه د باجوړ د ترکانو دستے هم شاملے وے۔ د دے لښکر په مرسته خان کجو په غوریه خیلو د حملے اراده اوکړه۔ د غوریه خیلو او خابني خیلو دا جنګ د لنډي سیند یو ښاخ چه اوس ورته شاه عالم ، وئیلے شي په غاړه شوے دے۔ دا جنګ د ، شیخ تیپوره

په نوم هم مشهور دے۔ شیخ تیمور په دواوه کښے یوکلے دے۔ وئیلے شي چه د دے جنګ په نتیجه کښے غوریه خیل مکمل مغلوب او برباد شول۔ د مؤرخ راورټي د خیال مطابق دا جنګ به د سنه ۱۵۵۰ء په خواوشا کښے شوے وی۔

وئیلے شي چه کوم وخت ګجو د خیل لښکر سره د سینب غارے ته راغے نو دسیند په بله غاړه غوریه خیل هم جنګ ته تیار ولاړ وو۔ په دے موقع خان ګجو هغوی ته اووئیل ؛ ترېورانو موږ به خوا مخواه جنګ کوو۔ ولے په سیند کښے خو نهٔ شو جنګیدلے۔ او نهٔ هسے عبث د یوے غاړے نه بلے غاړے ته غشی وېشتلے شو۔ نو ښه به دا وی چه یا تاسو راپورے شئ او یا به موږ در پورے وزو۔ پس که چرے تاسو راپورے کیږئ نو موږ به په ورستو لاړ شو او تاسو ته به موقع درکړو۔ او که نه موږ پورے غواړئ۔ نو تاسو ورستولاړ شئ چه موږ درپورے شو۔ غوریه خیلو دا خبره غوره اوګڼله۔ چه دوئ دِ راپورے شی۔ د خان ګجوملګرو د هغهٔ د تجویز سره اتفاق نهٔ کړلو۔ ولے خان ګجو په خپله خبره ټینګ وو۔ غوریه خیل یه شا لاړل۔ او خانبی خیل په هغوی پسے ورپورے وتل۔ د دواړو قبیلو ترمینځ سخت جنګ اوشو۔ چه په هغ کښے د روایاتو مطابق غوریه خیلو ماتے اوکړه۔ ډیر خلق ئے اووژلے شول۔ او باقی په تیښته لاړ۔

د دے جنګ د پاره غوریه خیلو هم ښه تیاری کړی وه۔ داخون درویزه او افضل خان (تاریخ مرصعه) مطابق یواځے د خلیلو په لښکر کښے دولس زره سواره وو۔ ولے په جنګ کښے د یوسف زو تیراندازو ډیره مړانه ښکاره کړه۔ دوئ په غوریه خیلو داسے غشی اوورول چه هغوی ئے په تیښته مجبور کړل۔ د درویزه مطابق د یوسف زو له خوا د غوریه خیلو سره ډیر سپک سلوک اوشو۔ ولے سره د دے په جنګ کښے غوریه خیلو ته لوئے نقصان رسیدلے وو۔ بیا هم دوئ د خپلے علاقے نه بے ځایه نهٔ کړے شول۔

د خانبی خیلو، غوریه خیلو د خپلے اصلی مینے ر د قندهار، غزنی علاقے) نه دوادئ پېښور، سوات، بونیر وغیره علاقو په لور مهاجرت، د دے قبائیلو او دله زاکو ترمینځه خونړی جنګونه او په دے جنګونو کښے د دله زاکو مغلوبیت، بیا د خانبی خیلو او غوریه خیلو ترمینځه خوفناک جنګ او د هغ په نتیجه کښے د غوریه خیلو تباهی، د یوسف زو له خوا ګګیانو ته دواوه او مهمنزو ته د هشت نغر علاقه ورکول۔ او داسے نور واقعات چه د روایاتو په بنا پورته ذکر شول۔ داسے خبرے دی چه په هغ یقین کول ګران دی او داسے معلومیږی چه پښتنو مؤرخینو د دے قبائیلو د دے روایتی مهاجرت او اباد کاری په حقله د مبالغ نه کار اخستے دے۔ او دا واقعات

نې بې ترتيبه او بې تاريخه دخوفناکو جنګونو په شکل کښې پيش کړې دي۔

ددې قبائيلو د روايتي مهاجرت دصحت د صداقت په باب کښې چه دکومو خبرو په وجه شکوک او شبهات پيدا کيږي هغه په لنډه توګه دا دي :-

(۱) د رواياتو او شجراتو مطابق سړبني قبائيل په دوو څانګو کښې ويش دي۔

(۱) د شرخبون (شرف الدين) اولاد چه مهم قبائيل په کښې ترين او ابداليان دي۔ او (ب) د خرشبون (خيرالدين) اولاد چه مهم قبائيل ئې يوسف زي، مندړ دي۔ د رواياتو مطابق د خرشبون ټول اولاد يعنې د وادئ پيښور او سوات وغيره علاقو ټول موجوده قبائيل په ابتدا کښې د ترينو، ابداليانو سره په يو ځائے استوګن وو۔ چنانچه د وادئ پيښور دموجوده قبائيلو مهاجرت د خپلې اصلي زمکې نه د ترينو د تغلب په وجه بيانيږي۔ دلته دا سوال پيدا کيږي چه هرکله دا ټول قبائيل يعنې د خرشبون اولاد (ترين، ابداليان) او د خرشبون اولاد (خاښي خيل، غوريه خيل) د يو پلار اولاد، د يو کورنۍ خلق او د يو زمکې استوګن وو، نو ضرور دوئ به په ژبه، لباس خوئ بوئ او دودونو دستورونو کښې هم يو شان وو۔ ولې د شرخبون او خرشبون د اولاد ترمينځه (يعنې د ترينو، ابداليانو او يوسف زو، غوريه خيلو وغيره) په ژبه، لباس او ناسته ولاړه کښې دومره څرګند او زيات فرق دے چه مؤرخين د دے دواړو اولسونو ترمينځه د علمي او تاريخي اصولو په رڼا کښې د نسلي اشتراک منلو ته هم غاړه نږدي۔

(۲) د پټې خزانې د روايت مطابق د خرشبون د ژوند زمانه د سنه ۳۰۵ه نه د سنه ۴۱۱ه پورې وه نو موږ دده د پلار ورور شرخبون د ژوند زمانه هم ددے نيږدے په حوا وشا کښې ټاکلے شو. د خرشبون د وفات سنه ۴۲۱ه په وخت کښې په غزني کښې د آل ناصر حکومت قائم وو۔ او پښتانه د نوم نښان خاوندان وو۔ يا داسې به اووايو چه د يوولسمې صدۍ په اغاز کښې چه خرشبون لا په خپله روايتي زمکه استوګن او ژوندے وو۔ ددے نه ډير وړاندے په وادئ پيښور کښې د البيروني د وينا مطابق پښتانه موجود وو۔ د دويمې صدۍ هجرۍ په اوله کښې په وادئ پيښور کښې د پښتنو د موجودګۍ مرسته د "فرشتے" نه هم کيږي۔ دا ظاهره ده چه دا ټول پښتانه به يوائے دله زاک نه وو۔ لکه څه رنګ چه د دے رواياتو نه معلوميږي۔ بلکه د پښتنو نور قبائيل به هم موجود وو۔ د بابر او پښتنو واسطه د سنه ۱۵۰۴ء نه شروع شوې ده۔ او د رواياتو مطابق د کابل نه د وادئ پيښور په لور د خاښي خيلو او غوريه خيلو (يعنې د وادئ پيښور د موجوده قبائيلو) مهاجرت د مرزا الغ بيګ د حکومت په زمانه کښې واقع شوے دے۔ مرزا الغ بيګ په کابل او غزني باندے د سنه ۱۴۶۹ء نه د سنه ۱۵۰۲ء پورے حکمران وو۔ که چرے د مرزا الغ بيګ د لاسه د خاښي

خیلو د نهه سوه مشرانو دمبینه قتل نیته د سنه ۱۴۸۰-۸۲ع خواوشا فرض کړے شي او د ملک احمد په مشرۍ کښې د دے قبائیلو مهاجرت د وادۍ پېښور په لور د سنه ۱۴۸۳ع نه وروستو اوګڼلے شي۔ نو د پېښور په علاقه د بابر د حملو او د دے مهاجرت ترمینځه به ایله شل دویشت کاله تیر شوی وی۔ او دا دومره لږه عرصه ده چه په دے کښې په دے دومره وسیعه علاقه کښې د دے دومره قبائیلو راتګ، جنګونه او ابادکاری ناممکن معلومیږی۔ د دے نه علاوه د بابر په وخت کښې دله ذاک لا ههغه شان په وادۍ پېښور کښې موجود او د اقتدار خاوندان وو

د هند د فتح نه اول بابر د سابق صوبه سرحد په موجوده پښتنو باندے ځو واره تاختونه کړی دی۔ او د کومو پښتنو سره چه د هغهٔ واسطه راغلی ده د هغه قبائیلو او د هغوی د علاقو ذکرئ په خپلو خپلو نومونو سره په تفصیل سره کړے دے۔ بابر چه په خپلو واقعاتو کښې د کومو پښتنو قبائیلو ذکر کړے دے هغه دله ذاک، یوسف زی، مهمنزی، ګګیاني، بنګښ، افریدی، وزیر، بنوڅي، او کرلاني دی۔ دا ټول قبائیل د بابر نه وړاندے په دے خپلو خپلو موجوده علاقو میشته وو۔ او د بابر د تیک نه دا صفا معلومیږی چه دا خلق د ډیرے مودے نه په دے علاقو کښې استوګن وو۔

مرزا الغ بیګ د بابر تره وو۔ او د یوسف زو سره هم د بابر تعلقات وو۔ لکه چه د ملک شاه منصور (چه د ملک سلیمان ځوئ وو۔) لور بي بي مبارکه بابر ته واده شوی وه۔ بابر یو ډیر صاف ګو او سپین زړے انسان وو۔ هغهٔ خپل ټول واقعات په ډیره صفائی لیکلی دی۔ نو که چرے د مرزا الغ بیګ د لاسه د یوسف زو د نهه سوه مشرانو د قتل افسانه او د دے قبائیلو د مهاجرت واقعه په حقیقت کښې شوے وے نو یقیناً بابر به د هغے ذکر کړے وو۔ ولے بابر د دے واقعاتو په باب کښې قطعي خاموش دے۔ د دے نه دا قیاس کیدے شي چه دا واقعات به د مبالغ نه خالی نهٔ وی۔

د شرخبون د اولاد یعني د ترینو، شیرانیانو او ابدالیانو په ژبه او لباس کښې او د خرشبون د اولاد یعنے د خابنی خیلو او غوریه خیلو په ژبه، لباس او تمدن کښې نمایاں فرق دے۔ که چرے دا ټول قبائیل د یو ے تنے دوه ځانګے اوګڼو۔ نو بیا به دا هم منل پکار وی چه خابنی خیلو او غوریه خیلو په وادۍ پېښور او ملحقه علاقو کښې د استوګنے نه پس د نورو پښتنو قبائیلو د ګوانډ او اختلاط په وجه خپله ژبه، لباس او دودونه دستورونه بدل کړی دی۔ ولے د دوئ نه دا وړاندیني خلق د روایاتو مطابق د دله ذاک دی۔ چه د شجره نویسو له خوا په کرلاني قبائیلو کښې شامل دی۔ او کرلاني قبائیل نن ورځ هم د خابني خیلو او غوریه خیلو نه په ژبه، دودونو دستورونو او لباس

کښې نمایاں فرق لري - د دې نه دا صفا معلومیږي چه د خاښي خیلو او غوریه خیلو ژبه هم خپله اصلي او پښتونځ ژبه ده - په دې بنا زما په خیال کښې دا قبائیل د ترینو او شیرانیانو تربوران ګڼل څه موزونیت نهٔ لري -

لکه چه وړاندې وئیلی شوي دي د سکندر اعظم د حملې (سـ ۳۲۷ ق م) په وخت کښې په وادۍ کونړ، باجوړ، وادۍ تالاش او سوات وغیره علاقو کښې د یوناني مؤرخینو له خوا دړې قبائیل د "اسپاسي ګوري او اساکیني" په نامو ذکر شوي دي - د دې قبائیلو د شناخت په مقله وړاندې په تفصیل سره بحث شوې دې - زما په قیاس کښې یوسف زي، مندړ، غوریه خیل او اتمان خیل وغیره هم د دې پورته قبائیلو اخلاف دي - دا خلق به په قدیمه زمانه کښې په وادۍ کونړ او باجوړ وغیره علاقو کښې اوسیدل - او په قلاره قلاره به په دې علاقو کښې غزیدلي وي - البته دا خبره ممکنه ده چه په دوئ کښې به څنې قبائیل واقعي د علاقو ته په ډیرې وروستۍ زمانه کښې د مهاجرینو په شکل کښې راغلي وي - لکه د مثال په ډول به مهمند واخلو - دا خلق د بابر په وخت کښې د غزني په منطقه کښې اوسیدل - او داسې معلومیږي چه د دې موجوده علاقو ته دوئ په ورستۍ زمانه کښې راغلي دي - لیکن د دوئ دا راتګ او مهاجرت به هم په دې ډول شوې وي - څه رنګ چه په اوسنۍ زمانه کښې دا خلق د خپلې غزنیزې علاقې نه د مردان او پیښور میداني علاقو ته راغلي او اباد شوي دي - په دې مزکو دوئ په ابتدا کښې د همسایه اجاره دارو او دهقانانو په شکل کښې اباد شوي وو - ولې ورو ورو دوئ دغه زمکې خپلې کړې - او نن ورځ د ملکي خلقو نه هم اوچت دي - دغه شان په وړومبۍ زمانه کښې د دې نو ابادکارو او اصلي استوګنو ترمینځه د جنګونو امکانات هم کیدې شي - د یوسف زو، دله زاکو او غوریه خیلو ترمینځه به هم جنګونه شوي وي - څنګه چه د پښتنو خلقو جنګونه به هم د زمکو د پاره وو - او نن ورځ هم د زمکې د پاره جنګونه کیږي - په دې جنګونو کښې به د دله زاکو د لاسه زمکې هم وتلې وي - او د دې جنګونو په نتیجه کښې او د اقتصادي بدحالۍ د لاسه به دوئ د خپلې علاقې نه په وتلو هم مجبور شوي وي - ولې نهٔ خو د دې جنګونو تاریخ معلوم دې - او نهٔ دا واقعات په څه تاریخي شهادت مبني دې - کیدې شي چه د یوسف زو، غوریه خیلو او دله زاکو دا جنګونه په ډیرې وړاندینۍ زمانه کښې شوي وي - او د دې یاد د روایاتو په شکل کښې سینه په سینه محفوظ راغلي وي - او د زمانې په تیریدو سره د اصلي واقعاتو شکل بدل شوې او صرف زباني روایاتو تاریخي حیثیت موندلې وي - بهرحال د خاښي خیلو او غوریه خیلو قبائیلو مهاجرت واقعات نهٔ خو په دې موجوده شکل کښې د تاریخي شهادت نه څه مرسته مومي - او نهٔ په دې

شکل کښې د دے د واقع کیدو څه امکان کیدے شي په دے بنا دا واقعات د مبالغې او کمي زیاتي نه خالي نه وي - او د دے اشکالو باعث هم دا شجرے دي -

**خانبې خیل یا شیخا خیل :-** د دے قبائیلو نه مراد یوسف زی ، مندړ، ترکاني او ګګیاني دي په دے قبائیلو کښې مهمه قبیله د یوسف زو ده - د شجراتو په رڼا کښې د دے قبیلے مختصرحالات او د دوئ د استوګنے د علاقو تفصیل په لنډ ډول د اسې دے :-

**یوسف زی :-** دا قبیله په خپل مینځ کښې په دوو څانګو ویش ده - چه یو ته یوسف زی او بل ته مندړ وئیلے شي - د اخون درویزه د وینا مطابق د دے قبیلے مشر نیکه مند نومیده . چه دوه ځامن ئے لرل - د یو نوم یوسف وو اولاد ته ئے یوسف زی وئیلے شي - او د بل نوم عمر وو - د ځه یو ځوئے وو - مندړ نومیده - او اولاد ئے په مندړ یادیږی -

د روایاتو مطابق د یوسف پنځه ځامن وو چه عیسٰے ، موسٰی ، مالی ، اکو او اوریا نومیدل د عیسٰی یو ولس ځامن وو - وئیلے شي چه یو ځل مغلو د دوئ مال مواشي بیولی وو - او عیسٰی سره د خپلو ځامنو د مغلو په تعاقب کښې تلے وو - او د مغلو سره په جنګ کښې سره د نهو ځامنو مړشوے وو - د ده دوه ځامن ژوندی پاتے وو چه د یو نوم حسن وو - اولاد ئے په حسن زی یادیږی - او د بل نوم یعقوب وو - اولاد ئے په یعقوب زی مشهور دے - د عیسٰی یو بل ځوئے پس مړګی هم شوے وو - چه « اکا » نومیده - اولاد ته ئے « اکا زی » وائي - د عیسٰی د درے وارو ځامنو اولاد د کوه سیاه نه واخلے د مهابن د غرونو پورے اباد دے - حسن زی او اکا زی د اباسیند په مشرق غاړه او مدا خیل د اباسیند په غربي غاړه اباد دي -

د یوسف زو د دوو ځامنو (موسٰی او مالی) اولاد په بونیر کښې اباد دے - د بونیر په قطب د سوات غرونه دي - قبلے ته ئے سم « رانیزي » نمرخاته ته ئے اباسیند او سوئیل ته ئے د چملے علاقه ده - د بونیر ګیر چاپیره غرونه دي - په دے غرونو کښې « ایلم » او « دوه سرے » « دسمندر د مخ نه لس زره او یو فټ اوچت دي - د دے غرونو په مینځ کښې ځائے په ځائے کټئ دي - چه په هغ کښې کرکرونده کیږی - د بونیر اب و هوا خوند ناکه ده - په غرونو ئے اکثر واوړے پرتے وی - د یوسف زو خلق په بونیر کښې په دے ډول اباد دي - نمر خاته ته چغرزی ، قطب ته ګدائے زی ، قبلے ته سالارزی ، سوئیل ته نورزی او په مینځ کښې عائشه زی او دولت زی دي -

د حضرت پیربابا مزار د بونیر په باچا نوے کلی کښې واقع دے - برندو د بونیر مشهور خوړ دے چه د امب په مقام په اباسیند کښې ورګډیږی - د بونیر علاقه نن ورځ د سوات په ریاست کښې شامله ده -

د روایاتو مطابق د یوسف د اوریا نوے څوی په بادی مشهور وو - ځکه چه ډیر متکبر وو. دا مون درویزه مطابق د تقسیم په وخت کښے دهٔ ځیلے مور ته سپک وئیلی وو - او هغ ورته الزار کړے وو - او د دے ازار له کبله د هغهٔ اولاد ډیر نهٔ شو- او څه لږ ډیر په چغرزو کښے شامل دے -

د یوسف د څلورم څوی (اکو) اولاد په کوز او بر سوات ، دیر او پنجکوره کښے اباد دے. د اکو دوه څانگے دی چه یو ته خواجه زی او بل ته رانړے زی وائی - رانړے زی بیا په خپلو کښے دوه څانگے دی- سم رانړے زی او بر رانړے زی - سم رانړے زی د مقبوضه علاقے نه د ملاکنډ تر غرونو اباد دی - بر رانړے زی د ملاکنډ نه پورته دی - د خواجه زی مختلفے څانگے په برسوات کښے استوګنے دی - د دے بناخ یوه څانگه ،، ملی زی ،، په دیر کښے اباده ده -

**سوات** :- یوه سرسبزه او زرخیزه علاقه ده - چه رقبه به ئے څلور زره مربع میله وی. د سوات څنګ غرونه د سطح سمندر نه لس زره فټه اوچت دی . د سوات په قطب دیر او چترال ، نمرخاتهٔ ته ئے د اباسیند غرونه ، سویل ته ئے د بونیر علاقه او د قبلے په لور ئے ارنګ برنګ اتمان خیل او باجوړ دے - سوات د یو ے تنگے درے په شکل کښے د غرونو په مینځ کښے پروت دے - او په دوو حصو کښے تقسیم دے. یو حصے ته برسوات وئیلے شی - او بل ته کوز سوات. د دوارو په مینځ کښے د سوات سیند بهیږی - دا علاقه ډیره زرخیزه او اباده ده - او د قدرتی ښکلا له مخه په ټول پاکستان کښے مشهوره ده - سکندر اعظم چه په ۳۲۷ ق-م کښے په هند حمله کړی وه - هغه وخت کښے چه د یونانی مورخینو له خوا په دے علاقه کښے کوم خلق اباد شوی دی - د هغوی ذکر د ،، اساکینی ،، په نامه شوے دے - دے خلقو د سکندر سره شدید جنګونه کړی وو -

دا شوک د مذهبی شخف له کبله چه بدھ مذهب په اول وار د ګندهارا علاقے ته راورسید نو د سوات علاقه د خپل قدرتی محل وقوع او ښکلا له مخه د بدھ مذهب مرکز اوګرزیدهٔ - دا حقیقت د سوات په علاقه کښے د بدھ د زمانے د آثار قدیمه د پریوانئ نه څرګند دے - په دے علاقه کښے چه د بدھ مذهب څومره آثار موندلے شوی دی او موندلے کیږی. دومره په بله یو علاقه کښے نهٔ دی موندلی شوی - د دے نه علاوه د چینی سیلانیانو او زائرینو سفرنامے هم د دے حقیقت مرسته کوی - په دے چینی زائرینو کښے وړومبے سیاح فاهیان دے - نوموړے په ۴۰۵ء کښے د کوه هندوکش په لار سوات ته راغلے وو- د دهٔ د وینا مطابق په دغه وخت کښے په دے علاقه کښے د بدھ مذاهب پنځه سوه خانقاهونه موجود وو- او په ټولو کښے راهبان استوګن وو - د دهٔ نه

پس بل سیاح سُنګ ین دے چه په سنه ۱۹ء کښے د کافرستان په لاره سوات ته راغلے وو. دا ښاغلے سیاح هم وائی چه په سوات کښے بده مذهب په ترقئ روان دے. خانقاهونه اباد دی او خلق د مذهب سره مینه لری. سوات یو اباده او زرخیزه علاقه ده. او د خلقو کسب کرونده ده.

بل مشهور سیاح هیون سانګ دے. چه د سنه ۶۳۰ء نه د سنه ۶۴۳ء پورے په کاپیسا، ګندهارا او هند په لتو کښے ګرځیدلے دے. نوموړے سیاح سوات ته هم تلے وو. ولے دغه وخت دا فتالیتو (سپین پوستی هونان) د حملو په وجه په ټول ملک کښے بده مذهب ته صدمه رسیدلی وه. او د سوات علاقه هم د دے نه متاثر شوی وه. دے وائی چه د سوات سیند په غاړه څوارلس سوه خانقاهونه یا خو وران دی او یا شاړ پراته دی. خلق ډیر خوږ ژبانه او کارنده دی. د چین په سیلانیانو کښے اخری سیاح ووکنګ وو. چه په سنه ۷۵۳ء کښے سوات ته راغلے وو. او دلته په یو خانقاه کښے راهب شوے وو. د ده د لیکنو نه هم د هیون سانګ د لیکنو مرسته کیږی.

د یوولسمے صدئ (مسیحی) په اغاز کښے چه محمود غزنوی د پښتنو فوځونو (چه اکثر په غلجی، لودی، کرلانی پښتنو مشتمل وو) په کومک په هند حملے شروع کړے. نو دغه وخت د پښتنو یو لښکر چه سردارئ پیر خوشحال نومیده. په سوات حمله اوکړه. او د سوات غیر مسلم راجا ګیرا ته ئے چه په اکثر و احتمالاتو به د هند د شاهی کورنئ د راجه جے پال د لوری نه د سوات ګورنر وو، شکست ورکړو. او په دے علاقه ئے په اول وار اسلامی سلطنت قائم کړو. د پیر خوشحال قبر د سوات سیند په مشرقی غاړه د "اودی ګرام" په مقام موجود دے. د روایاتو مطابق د پنځلسمے صدئ په اغاز کښے د یوسف زو قبائیلو حملے په سوات شروع شوے او دوئ دا ټولے علاقے په قلاره اونیولے. په دے علاقو د قبضے نه پس د پښتنو مشهور مقسم شیخ ملی دا ټوله علاقه په دے قبیلو او ویشله. د شیخ ملی دا تقسیم د سنه ۱۹۳۱ء پورے په پښتنو کښے مسلم او مروج وو. ولے د دے نه پس د سوات د باچا صاحب په حکم دا ویش قانوناً منسوخ اوګڼلے شواو څوک چه په کومه زمکه قابض وو. هغه هم د هغځ سره پاتے شوه.

د سپارسمے صدئ په اخر کښے د یوسف زو په علاقه د مغلو حملے شروع شوے. په مغلو پسے د درانیانو او سیکانو دور راغے. ولے په دوئ کښے یو حکومت هم د دے جوګه نه وو چه په دے علاقو خپل اقتدار قائم کړی. په سیکانو پسے د انګریزانو دور راغے. انګریزانو هم د خپل اقتدار په وخت کښے په دے قبائیلو څه برید او نه موندلو. په دے اوږده زمانه کښے د "ملوکانو نشاط سوات" څه رنګ چه د خوشحال خان خټک په وخت کښے د هغځ په الفاظو کښے یو وران "رباط"

وو۔ دغه شان د سوات دا سنګلی علاقه د شلمې صدئ تر اغازه پورې د یوسف زو دکورنو او قبیلوي جنګونو په وجه یو وران رباط وو۔ ولې د شلمې صدئ په اولنو کالونو کښې د دې علاقې قسمت راوېښ شو۔ او په سوات کښې د یو داسې نوي دور اغاز اوشو چه بې مبالغې د پښتنو په ریاستونو او قبائیلي علاقو کښې د هغې مثال نۀ شي موندې۔ د دې نوي دور باني میاں ګل صاحب عبدالودود د سوات سابق باچا صاحب دې۔ میاں ګل صاحب د غیر معمولي صفاتو خاوند دې۔ او د خپل لوړ شخصیت او لوړو کارنامو له کبله د پښتنو په تاریخ او د پښتون قام په مشرانو کښې ډیر لوړ مقام لري۔ د میاں ګل صاحب دکورنئ حال په لنډ ډول داسې دې:۔

د سوات په شامیزي قبیله کښې عبدالواحد نوې یو سړې اوسیدۀ چه په قام صافي مهمند وو۔ دده کره غالبًا په ۱۷۸۴ء کښې یو هلک او زیږیدۀ۔ چه نامه ئې عبدالغفور کیښو دلې شوه۔ دغه هلک ورستو په اولس کښې د سوات "باباجي"، د سوات اخوند صاحب او د سیدو غوث " په نامو مشهور شو۔ دا هلک دابتدا نه عبادت او ریاضت ته مائل وو۔ د ابتدائي تعلیم د حصول نه پس د زیات تعلیم حاصلولو په غرض د سوات نه د مردان علاقې ته راغې۔ او څه موده ئې په ګوجرو ګړهئ کښې علم دین حاصل کړو۔ څه موده ئې په څوکنو کښې هم تیره کړه۔ او بیا د روحاني فیض د حصول په غرض د حضرت شیخ رحمکار کاکا صاحب رح په مزار کښې چله کشي هم اوکړه۔ او بیا د حضرت جي صاحب (پېښور) په خدمت کښې حاضر شو۔ او د هغوی د صحبت نه ئې فیض حاصل کړو۔ د دې نه پس تور ډهیری (صوابئ) ته لاړ او د مولانا محمد شعیب رح نه ئې لاس نیوه اوکړه۔ او په غلوبینت کاله پس خپل وطن سوات ته راغې۔ او په سیپل بانډئ نوې کلي کښې ډیره شو۔ او بیائې په نیکي خیلو کښې وادۀ هم اوکړو۔ او په مستقل ډول په سیدو کښې استوګن شو۔ اخوند صاحب د خپل زمانې یو پرهیزګار او نیکوکار بنیادم وو۔ نو ټول به ورله په ډیره درنه سترګه کتل۔ اخوند صاحب په ۱۸۷۷ء کښې وفات شو۔

د اخوند صاحب د وفات نه پس د هغۀ په اولاد کښې اختلافات پیدا شول۔ او د دې اختلافاتو په نتیجه کښې د سوات خلقو سید عبدالجبار خپل امیر مقرر کړو۔ نو موړې د سید اکبر شاه په نمسو کښې وو۔ په دې موقع د اخون صاحب نمسو میاں ګل صاحب عبدالودود او شیرین جان چه اول په خپلو کښې وران وو۔ رضا شول۔ او د سید عبدالجبار شاه مقابلې ته تیار شول۔ د دوئ ترمینځه مقابله اوشوه۔ چه د میانګلانو په ناکامئ ختمه شوه۔ د دې کورنئ اختلاف نه د دیر نواب فائده واخسته۔ او په سوات ئې حمله اوکړه۔ او سید عبدالجبار شاه د هغۀ په مقابله کښې ماتې اوکړه۔ د دې واقع نه پس د سوات خلق بیا میاں ګل صاحب ته

ماڼل شول. او هغهٔ ته ئے د حکومت دعوت ورکړو. او میاںګل صاحب دا دعوت قبول کړو. چنانچه سید عبدالجبار شاه په احترام سره ستهانے ته اورسولے شو. او میاںګل صاحب په کال ۱۹۱۷ سنهٔ کښې د نیکپي خیلو په علاقه کښې د «کبل» په مقام د سوات باچا منتخب شو. د دے نه پس میاںګل صاحب په خپل ذاتي تدبر او شجاعت د خپلے لارے ټول غرځونه اوار کړل. او په ټوله علاقه کښې ئے امن او امان قائم کړو. انګریزانو هم میاںګل صاحب په کال ۱۹۲۶ سنهٔ کښې د سوات والي تسلیم کړو.

میاںګل صاحب د غیر معمولي شخصیت خاوند وو. هغه په خپل تدبر او دوراندیشۍ په یو داسے علاقه کښې د یو منظم حکومت په قائمولو کښې کامیاب شو. چه د هغې خلقو د سوونو کالو راسے دیو حکومت اقتدار ته هم غاړه نهٔ وه ایښې. او په ډیره لږه موده کښې ئے خپل ریاست د ترقۍ په لار روان کړو. په ریاست کښې ئے سړکونه تعمیر کړل. په ټول ریاست کښې د ټیلیفون نظام خور کړو. د خلقو د ارام او سوکالۍ په لړ کښې ئے د هر ممکن ذریعے او وسیلے استعمالولو نه دریغ او نهٔ کړو. او خپل ریاست ته ئے په تاریخ کښې یو داسے لوړ مقام ورکړو. کوم چه د دے سیکلي ریاست موزون حق وو. میاںګل صاحب د درے شپیتو کالو په عمر کښې د حکمرانۍ ټول اختیارات په خپله رضا خپل ولي عهد شهزاده محمد عبدالحق جهان زیب خان ته په کال ۱۹۴۹ سنهٔ کښې اوسپارل. او د دے نه پس د حکول ټول کاروبار د دهٔ په ذمه وارۍ کښې چلیږی.

محمد عبدالحق جهانزیب خان یو روشن خیال حکمران او د اسلامیه کالج پیښور تعلیمیافته دے. او د خپل ریاست د هراړخیزے ترقۍ سره ډیره مینه لری. په تیره تیره د تعلیم د توسیع حد په هورته خواهش مند دے. د غه وجه ده چه نن ورځ په دے ریاست کښې د وړو لویو مدرسو یو جال خور دے. په سیدو شریف کښې چه د ریاست صدرمقام دے یو عالي شان ډګری کالج هم جوړ دے. د ریاست د خلقو د پاره د ابتدائي تعلیم نه واخلے تر اعلی تعلیمه پورے مفت انتظام دے او دا یو داسے کارنامه ده چه د سوات حکمران پرے په ځانے فخر کولے شی. د تعلیم نه علاوه د صحت او رفاه عامه د نورو کارونو په لور هم ډیره توجه کیږی. د غه وجه ده چه نن ورځ د سوات ریاست د ژوند په هر اړخ کښې مخ په ترقۍ روان دے.

**دیر:-** لکه چه وړاندے وئیلے شوی دی. په دیر کښې د قبیله یوسف زی د «اکوزو» په ځانګه کښې د خواجه زی زیلي ځانګه ملیزی اباد دی. د دیر علاقه اکثره غرنېژه ده. د دیر نمر خاتهٔ ته دریائے سوات، د قطب نمر خاتهٔ په لور ګلګت او کشمیر، قطب ته ئے چترال او قطب قبلے ته ئے افغانستان او د قبلے په لورے باجوړ او سویل ته ئے ملاکنډ دے. د دے ریاست

رقبه به درے زره مربع میله وی. د ریاست مشهور سیند پنجکوړه دے. چه په قدیم تاریخ کښے د رودکوری به نامه ذکر دے. د ریاست ابادی به غالباً د شپږ او اوو لکو ترمینځه مینځه وی. دا ریاست دخپل محل و قوع له کبله د ډیر سیاسی اهمیت حامل دے.

د ریاست دیر د حکمران ټبر بانی ملا الیاس نوے یو سړے وو. چه خپل زهد و تقوی په وجه داخون بابا په نامه مشهور وو. او په ملیزو کښے د پائنده خیلو په ذیله کښے وو. په اوولسمه صدئ کښے ملا الیاس د دیر په علاقه کښے شهرت نشینی ئے په حکومت کښے بدله کړه. او په دیر کښے ئے د ریاست بنیاد کیښود. د غلام خان نه پس په دے کورنئ کښے د اقتدار خاوند قاسم خان وو. دے سړی په خپل وخت کښے کافی طاقت او اقتدار حاصل کړو. او خپل ریاست ته ئے توسیع ورکړو. په قاسم خان پسے رحمت خان د اقتدار خاوند وو. نوموړے په ۱۸۸۴ء کښے وفات شو. او د دهٔ په ځائے محمد شریف خان په گدئ کښیناست چه د دهٔ ځوئے وو. په دے وخو کښے د جندول حکمران حاجی عمرا خان ډیر اقتدار حاصل کړے وو. په ۱۸۹۰ء کښے عمرا خان په دیر حمله اوکړه. او محمد شریف خان ئے په ماتی مجبور کړو. په دیر د عمرا خان قبضه راغله.

په ۱۸۹۵ء کښے انگریزانو د عمرا خان برخلاف فوځ کشی اوکړه. د غه وخت محمد شریف خان هم د انگریزانو ملگرے وو. د محمد شریف خان او انگریزانو مشترک لښکر د عمرا خان طاقت ختم کړو. د دے په بدل کښے انگریزانو محمد شریف خان د دیر حکمران اومنلو. او د هغهٔ سره ئے معاهده اوکړه. د دے معاهدے له مخه د چترال د سړک ذمه واری محمد شریف خان په خپل سر واخستله. او په سړک باندے ئے د محصول وصولولو حق پرے ښودلو. د دے په بدل کښے انگریزانو هغهٔ ته لس زره روپئ سالانه وظیفه مقرر کړه. او قلور سوه ټوپکونه ئے په انعام کښے ورکړل. په ۱۸۹۷ء کښے انگریزی حکومت هغهٔ ته د نواب خطاب ورکړو. نواب محمد شریف خان په ۱۹۰۴ء کښے وفات شو.

د پلار په ځائے اورنگ زیب خان چه په بادشاه خان مشهور وو. د دیر نواب شو. حکومت هند دهٔ له هم د نوابئ خطاب ورکړو. (۱۹۰۸ء) . په ۱۹۱۸ء کښے حکومت هند د دے نواب سالانه وظیفه پنځوس زره روپئ مقرر کړه. او د نوابئ خطاب ئے د دهٔ په کورنئ کښے موروثی کړو. او د دهٔ ځوئے شاه جهان خان ئے ولی عهد اومنلو. او هغهٔ ته ئے د خان بهادرئ خطاب ورکړو. نواب بادشاه خان په ۱۹۲۵ء کښے وفات شو. او د هغهٔ په ځائے شاه جهان خان نواب شو. ولے د نوابئ په معامله د دهٔ سره خپل ورور عالم زیب خان مخالفت شروع کړو. د عالم زیب خان په مرسته د ه خار ه خان او د سوات میاں گل صاحب وو. د دوئ ترمینځه مخالفت

شدت اختیارکړو- اخرانګریزی حکومت د دوارو وروڼو ترمینځه فیصله اوکړه- او دعالم زیب خان د پاره ئے پنځه سوه روپئ میاشت وظیفه مقررهکړه- او هغه د ریاست د حدودو نه بهر کړے شو- او د مردان په علاقه کښے استوګن شو-

د پاکستان د قیام نه پس د نورو ریاستونو او قبائیلی علاقو په شان نواب شاه جهان خان هم د خپل ریاست الحاق د پاکستان سره اوکړو- ولے نواب شاه جهان خان د یو عجیبه مذاق او مخصوص طبیعت خاوند وو- په موجوده زمانه کښے چه د اولس د بهبود او ښیګړے په لړکښے په یوحکمران کوم فرائض عائد کیږی- د هغ په لور هغهٔ هیڅ توجه نهٔ کوله- دغه وجه وه چه په ریاست کښے د موجوده زمانے د تعلیم د پاره هم څه منظمه طریقه او انتظام نهٔ وو- او نهٔ د اولس د ښیګړے په غرض چرته په ریاست کښے هسپتالونه وو- نهٔ د ټک راټک د ذرائعو په لور توجه کیدله- غرض دے شلمے صدیٔ کښے هم دا ریاست د عهد وسطیٰ یو نمونه وه- حکومت پاکستان څو ځله د ریاست او رعیت په باب کښے نواب شاه جهان خان ته د هغهٔ د فرائضو په حقله یاد دهانی ورکړه- ولے هر ځل به نواب د دے یادګیرنے په لور څه توجه او نهٔ کړه- په دے وجه حکومت پاکستان د هغهٔ په معزولو مجبور شو- چنانچه په اکتوبر ۱۹۶۱ء کښے هغه د نوابئ نه معزول کړے شو- او د هغهٔ په ځائے ولی عهد محمد شاه خان خسرو نواب مقرر شو-

د دیر ریاست نهٔ صرف د خپل محل وقوع له کبله سیاسی اهمیت لری بلکه د قدرتی دولت له مخه هم یو موړ پټ ریاست دے- ولے د دے ریاست د قدرتی پټو خزانو نه کار نهٔ دے اخستے شوے- توقع کیدے شی چه د نوی نواب صاحب په عهدکښے به د ریاست د دے قدرتی دولت نه په درسته او موزونه طریقه کار واخستے شی- او د خلقو د بهترئ په کارونوکښے به استعمال کړے شی- د دیر موجوده نواب صاحب یو نوجوان تعلیم یافته انسان دے- او د موجوده زمانے د تقاضو او ضروریاتو نه ښهٔ خبردار دے- او د خپل ریاست د ترقئ د جذبے نه سرشار دے- دغه وجه ده چه د خپل ریاست د همه ګیرے ترقئ په کارونو کښے په ډیرے سرګرمئ کوشش کوی- په ریاست کښے د تعلیم محکمه قائمه شوی ده- په ټول ریاست کښے سکولونه او هسپتالونه ګیا دی قائمیږی- د سړکونو تعمیرته هم توجه کیږی- د ریاست د قدرتی پټو خزانو د رااېستلو د پاره هم منصوبے تیاریږی- او په کوم جوش او ولوله چه د ترقئ کارونه روان دی د هغ نه دا توتوقع کیدے شی چه د دیر د ریاست خلق به ډیرزر د خپلو نورو وروڼو عزیزانو سره په ترقئ کښے اوږه په اوږه روان شی-

**منداړ:-** د یوسف زو یله څانګه منداړ ده- دا اولس د خپل مورث اعلیٰ په نامه منداړ

مشهور دے۔ دوئ د مردان په ضلع کښې ان د چېلے پورے اباد دی۔

**چمله :-** د چېلے نسر خاتهٔ ته اباسيند قبلے ته ئے يوسف زی ، قطب ته ئے بونير او سويل ته ئے مهابڼ دے۔ دا علاقه ديوے درے په شکل کښې پرته ده۔ ميدان په کښې کم زمکه ئے ناهمواره او غرئيزه ده۔ نن ورځ دا علاقه د سوات په رياست کښې شامله ده۔ دا امبيلے مشهور جنګ په ۱۸۶۳ء کښې هم په دے علاقه شوے دے۔ دا علاقه د مندړو مرکز دے۔ د چېلے نه سويل ته د صوابۍ علاقه او د صوابۍ نه په قبله د مردان علاقه ده۔ او په دے ټوله علاقه کښې د مندړ مختلف ځانګے ابادے دی۔

**د مندړ ځانګے :-** د مندړ درے ځامن وو۔ چه منور، خضر او رځړ نوميدل۔ بيا د منور دوه ځامن وو۔ د يو نامه عثمان او د بل نامه اتمان وه۔ د عثمان هم دوه ځامن وو۔ د يو نوم کمال او د بل نوم امان وو۔ د کمال اولاد ته کمال زی ويلے شی۔ چه په خپلو کښې په دوو ځانګو کښې ويش دی۔ يو ځانګه مشران زی دی او بلے ته کشران زی ويلے شی۔ د طورو خانان په مشران زی کښې شامل دی او د هوتی مردان خانان په کشران زی کښې۔ په مشران زی کښې اکوزی هم شامل دی۔ چه د عنايت خان د دريمے ښځے اولاد دے۔ او په محيارو کښې استوګن دی۔

د اتمان اولاد هم دوه ښاخه دے۔ په يو ښاخ کښې اکازی، ګنازی، او علی زی شامل دی۔ دوئ ته اتمان نامه ويلے شی۔ او د اباسيند په غاړه د مهابڼ په سويل اباد دی۔ ټوپۍ، مينۍ، کوټه، او مرغز د دوئ په علاقه کښې مشهور کلی دی۔ په دوئم ښاخ کښې د سدو اولاد دے۔ دوئ د اتمان نه په قبله پراته دی۔ د سدوزو ذيلی ښاخونه په دے دول اباد دی :-

**ايا خيل :-** په کنډه ، زيده ، هند او شاه منصور کښې۔ عمر خيل په کالا ، دره، صوابۍ مانيرۍ کښې مير احمد خيل په مرغز ، ټنډ کوئ او سليم خان کښې ، بهزاد خيل په کلابټ کښې او خدو خيل په پنجتار ، ډاګۍ ، توتاڼ ، باجا او بام خيل کښې استوګن دی۔

**رځړ :-** دا ټپه په پنځو ځانګو کښې ويش ده۔ مانی زی ، ملک زی ، اکوزی ، خضر زی او محمود زی ( ماموزی ) ۔

**مانی زی :-** په ډاګۍ ، ترلاندۍ ، ترکۍ ، پرمولی او ادينه کښې ملک زی په يار حسين شير دره ، يحقوبی کښې ، اکوزی په دوبيانو ، سره چينه او اسماعيله کښې ، خضر زی په مشيره ، کالو خان ، شيره غونډ کښې ، محمود زی په نوی کلی ، شيخ جانا ، اسوټا ، او نارنجی کښې اباد دی۔

**ترکلاني:-** د اخون درویزه د روایت مطابق د شیخا دوه بنځې وې. د یوې نوم مرجانه وو. یوسف زی او مندړ د دې اولاد دې. د بلې نامه بسو وه. چه یوځوئې ئې لرلو. نامه ئې ترک وه. او اولاد ته ئې ترکاني یا ترکلاني ویلے شي. او ننورځ په باجوړ کښې میشته دي.

باجوړ:- د باجوړ علاقه به اندازاً څه پنځو یشت میله اوږده او څه شل میله به پلنه وي. د دې علاقې قطب ته د پنجکوړې سیند دے. قبلې ته ئې وادئ کونړ او نمر خاتهٔ ته ئې اتمان خیل او مهمند دي. د سویل په لورئې هم د مهمندو علاقه ده. دباجوړ علاقه په پنځو حصو کښې تقسیم ده.

(۱) چارمنګ (۲) بابوکاره (۳) سورکمر (۴) رود (۵) وادئ میموند.

په دې علاقه کښې اکثر یوسف زی او ترکاني اباد دي. د " رود " په کڅئ کښې څه صافیان او اتمان خیل هم استوګن دي. په چارمنګ، بابوکاره او وادئ میموند کښې سلارزی (یوسف زی) او ترکلاني اوسیږي. د جندول کڅئ د پنجکوړې سیند او نواګئ ترمینځه ده. دا کڅئ به اندازاً اتهٔ میله اوږده او څلور میله پلنهٔ وي. دا علاقه دخپل یو تېر حکمران عمرا خان د شاندارو کارنامو په وجه ډېر شهرت لری. عمرا خان د پلار د وفات نه پس د خپل ورور محمد شیر عالم خان ترمینځه د اقتدار دپاره کشمکش شروع شو. چه په دغ کښې عمرا خان کامیاب شو. او د ۱۸۸۳ء سنه پورې ئې د خوا وشا په علاقو خپل اقتدار قائم کړو. او تقریبًا د دیر نیم ریاست ئې په خپله قبضه کښې واخست. او بیا ئې په ۱۸۹۰ء سنه کښې په دیر حمله اوکړه. او نواب محمد شریف خان ئې د دیر نه په وتلو مجبور کړو. دغه وخت کښې د عمرا خان اقتدار انتها ته رسیدلے وو. عمرا خان د خپل وخت یو مدبر او جانباز حکمران وو. دغه د خپل ریاست د حفاظت په لړ کښې ځائې په ځائې مضبوط قلاګانې جوړې کړې وې. فوځ ته ئې په نوی طریقه ترتیب ورکړے وو. او د اعلیٰ قسم وسله ئې ورله مهیا کړی وه. د دیر د قبضې نه پس دغه د چترال په لور هم پیش قدمي اوکړه. په دې بنا انګریزانو د دغهٔ د اقتدار ختمولو اراده اوکړه - او د " چترال ریلیف " په نوم ئې په عمرا خان فوځ کشي اوکړه. د دې په نتیجه کښې عمرا خان افغانستان ته په تللو مجبور شو. او باقي عمرئې د امیر عبدالرحمان خان سره تیر کړو. (۱۸۹۵ء سنه) - هم په دغه کال د ملاکنډ ایجنسي قائمه شوه. په ابتدا کښې په دې ایجنسئ کښې د دیر او سوات علاقې شامل وې. ورستو د چترال علاقه هم د دې سره تړل کړې شوه. دا ایجنسي د مرکزی حکومت هند براه راست ماتحت وه. په ۱۹۰۱ء سنه کښې چه د شمال مغربي سرحدی صوبه تشکیل شوه. نو دا ایجنسي د دې صوبې د چیف کمشنر په نګرانئ کښې ورکړے

شوه - د قیام پاکستان نه پس د وحدت مغربي پاکستان په جوړیدو دا ایجنسی اوس دمغربي پاکستان دګورنر په نګرانۍ کښې ورکړی شوی ده.

**ګګیاني :-** دا قبیله دچلې مور په نامه مشهوره ده. د روایاتو مطابق د «شیخا» او مرجانه دوه ځامن وو. د یو نامه مند وه چه اولاد ئې یوسف زی او منډړ دی. د بل نامه مک وه. دده یولور وه چه کاکۍ نومیده. او په «زیرکی» نومې یو سړی واده شوی وه. دده اولاد اوس په ګګیاني مشهور دی. د «مک» د ځامنو اولاد ډیر نه شو. او هغه هم په ګګیانو کښې ورګډ دی. په موجوده وخت کښې ګګیاني د پیښور په ضلع کښې د دواوې په مزکه میشته دی.

# غوریاخیل

د روایاتو مطابق د «کند» د دریم ځوئ اولاد په غوریا خیل یادیږی. د غوریا څلور ځامن وو. چه دولت یار، خلیل، څوکنی او زیړانه نومیدل. بیا د دولت یار دوه ځامن وو. د یو نوم مهمند او د بل نوم داؤد وو.

د مهمند کوم اولاد چه په میدانی علاقو کښې استوګنه لری. هغوی ته کوز مهمند او کوم چه په غرنیزه علاقه کښې اباد دی هغوی ته بر مهمند ویلې شی. په اصل کښې دواړه یو دی. مګر د زمانې په تیریدو سره په دوئ کښې نن ورځ څه تعلق پاتې نه دے. د برمهمندو څه خلق د کونړ سیند په دواړو غاړو او د ننګر هار په علاقه کښې میشته دی. باقی حصه ئې د مهمندو په ایجنسئ کښې د شینبسا، سلالا او کسی غرونو په لړ کښې اباده ده.

د مهمندو کڅئ د غرونو په میښځ کښې واقع ده. ځائې په ځائې په کښې وړې وړې درې دی. د دوئ په علاقه کښې شمسا او ایله زی مشهور غرونه دی. د «خاپس» کړپې او «نکنړی» تاریخي کندونه هم د دوئ په علاقه کښې دی. کوز مهمند د پیښور په علاقه کښې د باړې سیند په ګسه غاړه په کچوړئ او میره کښې اباد دی.

د مهمندو د علاقې نه نمر خاته او قطب نمر خاته ته اتمان خیل او باجوړ قطب ته ئې د باجوړ او کونړ څه حصه او د قبلې په لور ئې هم د کونړ څه حصه او د ننګر هار علاقه سویل قبلې ته ئې د خیبر ایجنسئ او سویل نمر خاته ته ئې د پیښور ضلع ده.

د برمهمندو علاقه غرنیزه او کاڼیزه ده. غرونه ئې یخ او میدانی علاقه ئې ګرمه ده.

لعل پوره، کامه، گوشته، د دوئ مشهور کلی دی. د شبقدر نه چه جلال اباد ته کومه لار تلی ده. هغه ټوله د مهمندو په علاقه کښې تیریږی. د دے خلقو د کروندے زمکه کمه ده.

**داؤد زی** :- د دوئ نه په قطب مهمند پراته دی. او قبله په سویل ترنه خلیل دی. دوئ د خلیلو نه په شمیر کښې زیات دی. د غوریه خیلو د مهاجرت په لړ کښې د دوئ کردار واضح نهٔ دے. وئیلے شی چه دوئ د خان کجو مرسته حاصله کړی وه. او د هغهٔ په برکت د سیمے په علاقه کښې د کلپانئ په غاړه استوګن شوی وو. ولے په اخر کښې دوئ د پیښور په قطبی علاقه کښې د کابل سیند د شاشنو نو په مینځ کښې اباد شول. د دوئ دا علاقه ډیره ابادهاو زرخیزه ده.

**خلیل** :- د خلیلو موجوده علاقه به تقریبًا شل میله اوږده او اولس میله پلنه وی. د خلیلو ملکانو ته "ارباب" وئیلے شی. تهکال، سپینه وړیٔ او لنډیٔ د دوئ په علاقه کښې مشهور کلی دی. د دوئ اکثر زمکے د باړے په اوبو سیرابیږی.

**څوکنی یا څمکنی** :- داخون درویزه په رعایت څوکنی په ابتدا کښې د خیلو ورونو نه مرور شوی وو. د سپین غر په لمنو کښې ئے استوګنه اختیار کړی وه. د څوکنو په نمرخاتهٔ افریدی سویل ته ئے اورکزی او قبله په سویل ئے "توری" اباد دی. د دوئ قطب ته سپین غر دے. دا خلق په وادی فرمنه او کرمان کښې اوسیږی. ډیر کارکن جنګیالی او کینه ور خلق دی. ښځے نر ټول کار کوی. د بهر علاقو سره د دوئ تګ راتګ ډیر کم دے. د دوئ علاقه ډیره یخه ده. څکه د دے خلقو لباس اکثر دوړیٔ وی. څوکنی ټول سنی مذهب دی. او په خپل مینځ کښې ښهٔ متحد دی. د څوکنو یو کلے د پیښنور په ضلع کښې هم شته چه د حضرت میاں عمرؒ د مزار په وجه مشهور دے.

**زیړانی** :- د دوی څنے ټپے د تاجکو سره ګډے وډے په ننګرهار کښې اوسی. او څنے ټپے لکه بهار خیل، دولت خیل، احمد خیل او تارخیل وغیره د برو مهمندو سره په غم ښادیٔ کښے شریکے دی.

# د څمنی اولاد

د خرشبون د یو څوی (کند) د اولاد حال خو بیان شو. او د هغهٔ د بل څوی (څمنی) د اولاد حال په مختصره ول واوریٔ :-

لکه چه د شجرے نه معلومیږی د څمند اولاد څلور ځانگے دی - یعنی خویشکی، کتانی، مهمنزی او توخی . د روایاتو مطابق مهمنزی د ابتدا نه د خاښی خیلو په ډله کښے شامل وو. د وادئ پېښور په استوګنو پښتنو قبائیلو کښے د څمند په اولاد کښے د مهمنزو نه علاوه بله مهمه قبیله د خویشکو ده. د روایاتو مطابق دا خلق هم په ابتدا کښے د ارغستان د علاقے سره جوخت د پشین په زمکه اوسیدل. ولے څه رنګ چه وادئ پېښور دا نورتول قبائیل ( د روایاتو په بنا ) د ترینو د غلبے نه په مهاجرت مجبور شوی وو . د غه شان دا خلق هم ترینو د خپلے زمکے نه بے دخله کړل. د خویشکو څنے خلق د پشین نه ملتان ته لاړل. او هلته اباد شول. څنے غزنی ته لاړل . او بیا د هغه ځائے نه کابل ته او بیا د کابل نه دره غوربند ته اورسیدل. او هورے اباد شول.

د خویشکو قبیله تر ډیره حده د بابر سره مربوطه ده . د هندوستان په اخری حمله کښے د بابر اکثر فوځونه په پښتنو مشتمل وو . او په دوئ کښے زیاته حصه د خویشکو وه. دا خلق د خپل یو سردار سلیم خان په مشرئ کښے د بابر په مرسته کښے د پانی پت په جنګ کښے د ابراهیم لودی سره جنګیدلی وو. د غه وجه وه چه بابر او د هغهٔ نه پس د هغهٔ ځوځهائو په دوئ ډیر مهربان وو . د خویشکو د قبیلےکوم خلق چه د بابر سره هند ته تلی وو هغه خلق نن ورځ په « افاغنه قصوریه » مشهور دی . او د ستلج سیند په دواړو غاړو آباد دی. د خویشکی والو څنے تپے لکه بټک زی، حسین زی ، شهابن زی ، سلماک او کزلانی د قصور په قبله ابادے شوے وے . دوئ ته به ئے د برکلی استوګن وئیل . او څنے تپے لکه عزیزی، جنوز او ابراهیم زی وغیره د نهرخاته په لور اباد وو . او دوئ ته به ئے د لرکلی استوګن وئیل. څه موده پس دا خلق په خپلو کښے اونښتل . او د دوئ څنے تپے په خورجه، تانډه او هیروال کښے ابادے شوے . دا خلق تر اوسه په « افغانان قصوریه » مشهور دی. اګرچه دوئ نهٔ په پښتو ژبه پوهیږی . او نهٔ ئے جامه د پښتو په شان ده . د خویشکو څنے خلق په پشین او قندهار کښے هم اباد دی . د دوئ یو قبیله په دره غوربند کښے استوګنه ده . او څنے خلق ئے د نوښار په تحصیل کښے د نوشهره کلاں په قطب د لنډی سیند په غاړه په خویشکی نوے کلی کښے اباد دی . د پښتنو مشهور صوفی شاعر « ارزانی » چه د بایزید انصاری ( پیر روښان ) همعصر او مرید وو . د خویشکو په قبیله کښے د عزیزی په ذیله کښے وو.

**کاسیان :-** لکه چه د شجرے نه معلومیږی کاسیان په یوولسو ځانګو کښے ویش دی چه د شینوارو قبیله هم په د دوئ کښے شامله ده. لکه چه د « پټے خزانے » د روایت نه معلومیږی.

د خرشبون په اولاد کښې چه د کند او جمند اولاد د غورے غرے نه د غزنی ، کابل او بیاد وادئ پیښور په لور مهاجرت اختیار کړو۔ نو د غه وخت کاسیان بیرته کوه سلیمان ته لاړل۔ او سوړ میشته شول۔ البته د دوئ یوے قبیلے (شینوارو) د خانښی خیلو سره مهاجرت اوکړو۔ او د خیبر نه په قطب سویل غرونو کښې میشته شول۔ د دوئ علاقه د کابل سیند ښی لور ته د پیښور او جلال اباد ترمینځه ده۔ اکثر شینواری د خیبر نه په قطب غرونو کښې میشته شول۔ مګر د دوئ یوه قبیله د سنګو خیل د سپین غر په قبلیځه غاړه کښې د خوګیانو سره اباده ده۔ د دوئ ځنے خلق په باجوړ، کونړ او دره شیګل کښې هم اباد دی۔ د هزار ناؤ سیند د دوئ په علاقه کښې بهیږی۔ د دره خیبر په قبائیلو کښې شینواری یوه مشهوره قبیله ده۔ لنډی کوتل د دوئ د علاقے مرکز دے۔ په کوهاټ کښې هم د شینوارو ځنے خلق استوګن دی۔

# دوئيمه طبقه

**غورغشتی قبائیل :-** دا قبائیل د خپل مورث اعلیٰ غور غشت چه د قیس عبدالرشید دوئم ځوئے وو۔ په نامه مشهور دی۔ د روایاتو مطابق غور غشت د ۳۸۸ھ په خواؤشا کښې ژوندے وو۔

د غور غشت درے ځامن وو۔ یعنی دانی، بابی اومندو۔ په دوئ کښې د دانی اولاد زیات مهم ګڼلے شی۔ د دانی په اولاد کښې مهمه قبیله د کاکړ ده چه ذکر به ئے وروستو اوشی

**بابی :-** دا قبیله په قلات کښې اباده ده۔ ځنے د کوټے په خواو شا کښې هم اباد دی۔ د جوناګړه نوابان د دے قبیلے سره تعلق لری۔

د مندو اولاد په مندو خیلو مشهور دے ۔

# دغورغشت نسب نامه



لکه چه وئیلی شوی دی په غورغشتو کښے د دانی اولاد او د دانی په اولاد کښے کاکړ مهمه قبیله ده۔ د روایاتو مطابق د دے قبیلے مورث اعلیٰ کاک نومیده۔ چه یو خدا رسیده او نیک انسان وو۔ او د غیاث الدین غوری په زمانه کښے وفات شوے۔ او قبرئے د هرات د جامع مسجد په دروازه کښے موجود دے۔ ولے دا خبره درسته نهٔ معلومیږی۔ کاکړ یوه لویه قبیله ده۔ د دے خلقو په ژبه کښے څنے ډیر پخوانی الفاظ او د دوئ په تمدن کښے څنے داسے زاړهٔ رسمونه موجود دی چه د هغ نه د دے خلقو قدامت معلومیږی۔ البته دا ممکنه ده چه کاک نیکهٔ به په دے اولس کښے یو مشر تیر شوے وی۔ په موجوده وخت کښے کاکړ قبیله د سرزخیلو او سنهتیا په دوو څانګو کښے ویش ده۔ د دے دواړو څانګو نه بیا نورے ډیرے زیلے خورے شوی دی۔ دا خلق د کوئټے دویژن په ټولو واړو ضلعو کښے اباد دی۔ په ضلع هزاره کښے هم شته۔ د مشرقی پنجاب په قصبه کوهانه، خورجه او بلند شهر کښے هم کاکړ استوګن دی۔ څه لږ شان په دکن کښے هم شته۔ هیبت خان کاکړ چه د خان جهان لودی د لوری نه د "سمانا" حاکم وو۔ او د مخزن افغانی په تالیف کښے لویه برخه لری۔ د سنهتیا څانګے سره وو۔

**ناغر:-** وړه قبیله ده۔ اوس په کیتهرانو کښے ورګډه ده۔ د پښتنو د یو تاریخ (صولت افغانی) لیکوال زرداد خان د دے قبیلے غړے وو۔

**پنی :-** دا هم د کاکړو په شان مشهوره او قدیمه قبیله ده۔ او جرے ئے تر ویدی زمانے رسی۔ د دوئ څنے خلق په افغانستان کښے او څنے په دکن کښے هم استوګن دی۔ په دے قبیلے کښے د خانئ کور د ذیلی څانګے باروزی سره تعلق لری۔

# نسب نامه دګدون

د شجراتو مطابق ګدانه هم په غورغشتو کښے شامل دی۔ ولے د روایاتو مطابق دا خلق دابتدا نه د خانبنی خیلو په ګونډی کښے شامل دی۔ او د قبائیلی مهاجرت په زمانه کښے د یوسف زو منډړو سره دے علاقے ته راغلی دی۔ دګدون شجره په دے ډول ده:۔

## ګدون




ګدون قبائیل لکه چه د شجرو نه معلومیږی دوه ښاخه دی۔ چه یو ته سالار او بل ته منصوړ وائی۔ د سالارځانګے خلق اکثر د هزارے په غرونو کښے ان ترمه رش ، پورے اباد دی۔ د دوئ علاقه ډیره زرخیزه او سرسبزه ده۔ دګدون د دواړو ځانګو ترمینځه اکثر بدی وی۔ دروایاتو مطابق دګدون قبائیلو د مورث اعلیٰ نوم اشرف وو۔ چه په ګدانے مشهور شو۔ وروستو دا لفظ ګدون یا جدون مشهور شو۔ دا خلق اکثر د مهابڼ په غرهٔ کښے اباد دی۔ دمردان په ضلع کښے د بابینیٔ په کلی کښے هم د دوئ ابادی شته دے۔ لږ لږ په کشمیر او کیمبل پور په علاقه کښے هم موجود دی۔ د چچ په علاقو کښے د غورغشتو کلے د اشرف ګدون ابادکرده بیا نیږی۔

# دریمه طبقه

III بیټني قبائیل ۱-




د روایاتو مطابق بیټن د قیس عبدالرشید ځوئ دے۔ نوموړے د بیټ نیکهٔ په نامه هم یادیږی۔ د زیږیدنے او مړینے نیټے ئے معلومے نهٔ دی۔ البته د پټے خزانے د روایت مطابق د خرشبون د ژوند په موده کښے دے هم څه موده ژوندے وو۔ خرشبون په س۱۱۲ھ کښے وفات شوے دے۔ نو د دے شهادت په بنا موږ د بیټ نیکهٔ د مړینے نیټه د څلورمے صدی هجری اخری کالو نه ګڼلے شو۔ بیټ نیکه یو خدا پرست انسان وو۔ په ځلمی توب کښے ئے د عراق او عربستان سیل کړے وو۔ او د دے ملکونو د نیکو خلقو د صحبت نه ئے فیض

حاصل کړے وو - بیټ نیکهٔ ته په پښتوکښے د یو ولی الله په سترګه کتلے شی - د سلیمان ماکو په تذکرة الاولیاء (د ۶۱۲ھ تالیف) کښے دا مناجات د بیټ نیکهٔ سره منسوب دے - دا مناجات به دهٔ په کسی عزکښے وئیلو :-

لویه خدایه لویه خدایه! | ستا په مینه په مرضایه
عز ولاړ دے درناوی کښے | توله ژوی په زاری کښے
دلته دی د عز و لمنے | څمونږ کیږدۓ په کښے پلنے
داوکړے ډیرکړے خدایه | لویه خدایه لویه خدایا
دلته لرڅمونږ اوربل دے | وړکوړکے دے وور بوربل دے
مینه ستاکښے مونږ میشته یو | د بل چاپه ملهٔ تلهٔ نهٔ یو
هسک او مزکه نغښته ستاده | د مړو وده هم له تا ده
دا پالنه ستاده خدایه | لویه خدایه لویه خدایه

د بیټ نیکهٔ په ځامنوکښے دوړسبون او کجین اولاد ته بیټی وئیلے شی - د روایاتو مطابق دا خلق په اوله کښے د کوه سلیمان په لړکښے اباد وو - ولے څه موده پس دوئ د غلجیئو د لاسه د خپلے زمکے نه بے ځایه شول - او د کوه سلیمان په نمرخاتهٔ لور د رود ګومل په غاړه او د ټانک په زمکو میشته شول - په هندکښے د پښتنو د سلطنت په زمانه کښے دا خلق د لوئے اقتدار خاوندان وو - او د سلطنت په فوځونوکښے په ډیرشمیرکښے شامل وو -

# څلورمه طبقه

**متوزی قبائیل ۱-** د روایاتو مطابق بی بی متو د شیخ بیټ لور وه - چه په شاه حسین غوری وادهٔ وه - د دے اولاد په متوزی مشهور دے - او د دے نه مراد غلجی او لودی قبائیل دی - د دوئ شجرے په دے ډول دی :-

متوزی قبائیل په دوؤ څانګوکښے ویش دی (ا) غلجی قبائیل (ب) لودی قبائیل -

ځلورمه طبقه ــ متوزی (دوله څانګه) ـ ۹ ب ـ غلجي قبائیل ۱ ـ

# شاه حسین



# متوزي اوله ځانګه



# متوزی اوله څانگه

## علی خیل (ب)



# متوزی اوله ثانکه



# متوزی

غلجی قبائل

## ترکی بن موسیٰ بن ابراھیم بن غلجی

ترکی



# متوزی دویمه ځانګه

لودی قبائیل



# متوزی دویمه څانګه



# متوزی دوئیمه څانګه



# متوزی دویمه ځانګه

لودی قبائیل

## مروت (بن نوحانی (لوهانی)



# متوزي دریمه څانګه

لودی قبائیل

## نیازی بن ابراهیم لودی

## نیازی



# متوزی دریمه څانګه

## نسب نامه د سرواڼي بن شاه حسین غوري

## سرواڼي



# متوزي يا متې زي قبائل
## (غلجي او لودي پښتانه)

د پښتنو مؤرخينو د روايتونو مطابق شاه حسين نومې يو سړے چه د غور د شاهي كورنۍ سره ئې تعلق لرلو - په څه عجيبه اتفاقاتو د شيخ بيټ كره په استوګنه مجبور شوے وو - او دد ے استوګنے په نتيجه كښے شيخ بيټ دهغۀ ته خپله لور بي بي متو وادۀ كړى وه[1]- د شاه حسين او بي بي متو نه دوه ځامن اوشول - چه ديو نامه غلجي او د بل نامه ابراهيم وه. دغه ابراهيم ورستو په لودى مشهور شو - د شاه حسين د بلے ښځے نامه مهۍ وه چه د "كاغ" دوړ لور وه - د هغې هم يو ځوئے وو - چه نوم ئې سروانړ وو - اولاد ته ئې سرواني ويلے شي -

**دغلجي قبائيلوحال :-** د رواياتو مطابق ددوئ مورث اعلى غلجے وو - دكابل سيند په كښته د ننګرهار پورے او د هندوكش غرۀ په لړ كښے سويل ته او د سپين غرۀ په زنځيرى كښے قطب ته دهغه ټولے ورے ورے كښتۍ چه د كابل سيند لوئے كښتۍ سره يو ځائے شوى دى - په هغې ټولو كښے د غلجيانو قبيلے ځائے په ځائے ابادے دى - د دوئ علاقه به د قطب نه د سويل په لور اندازاً يو سل او اتيا ميله پلنه وى - زويړے قبله په سويل دے - دا علاقه اكثر غرئيزه او واوريزه ده - د دوئ په پوله قبلے ته مشرق ابداليان، قطب ته ئې هزاره قبيلے، نمرخاته ته ئې غوريا خيل او سويل ته ئې كسي غر دے -

غلجي قبائيل د ځوتكو او توخيانو په دوو غټو څانګو كښے ويش دى - او دواړو ترمينځه اكثر بدى وى - په كومو ورځو كښے چه نادرشاه افشار په قندهار قبضه اوكړه - نو هغه

---

[1] د شاه حسين او بي بي متو په حقله چه شجره نويسو كومه افسانه وضع كړى ده - هغه بيخي غلطه ده. او ددے وجه دا معلوميږى چه دے شجره نويسو د هرے قبيلے د تسميئے دپاره څه وجه لټولې ده - او په دے بنا ئې د غل زى (غل زوى) د مطابقت په غرض دا فسانه وضع كړى ده. دغه شان د ابراهيم لودى سره منسوبه افسانه هم بے بنياده ده - په اصل كښے دا دواړه قبائيل د هيا طله يا سپين پوستي هونانو اولاد دے - او دا هغه خلق دے چه فارسي او عربي مؤرخينو د خلج او غلجي په الفاظو ياد كړى دى -

وخت هغهٔ د هوتکو یو نیم زر کهٔ ایران او ترکستان ته جلاوطن کړے۔ او د غه شان ئے د دوئ جمعیت او زور کم کړو۔ باقي هوتک اکثر په مرغه، بادین او د سور غرېږ دواړو اړخونو کښے پاتے شول۔ د هوتکانو علاقه د قندهار نه په قطب نمر خاتهٔ غلور پړاوه او د قلات غلزی نه سویل نمر خاتهٔ ته په یو پړاؤ پرته ده۔

توخیان د رود « ترنک » په کڅئ کښے د پل سنگی نه تر شیباره پورے پراتهٔ دی۔ د غلجیانو په ټولو ټپو کښے د سلیمان خیلو څانګه په شمیر کښے زیاته ده۔ د سلیمان خیلو څلور ښاخونه یعنے قیصر خیل، اسماعیل زی، احمدزی، او سلطان زی ډیر مشهور دی۔ د دوئ علاقه په دوؤ حصو کښے تقسیم ده۔ په سویلی حصه کښے ادین خیل، نسو خیل، قلندر خیل شکی خیل، شاتوری۔ جلال خیل، ممش او مموت خیل اباد دی۔ او په قطبی حصه کښے سلطان زی (ستان زی) او احمد زی استوګن دی۔ د ستانی زی څخه ټپې لکه جبار خیل، بابکر خیل، په جګدلک، سرخ رود، او ګندمک کښے اوسیږی۔ څه قدر جبار خیل په لمغان او علی سنګ کښے هم شته۔ احمد زی په مشرقی لهوګره، سپیګئ، او سرخاب کښے اباد دی مګر د غرونے د پاره مال مواشي تر جلال اباده بیائی۔ علی خیل څه په زرمت او څه په مکور کښے استوګن دی۔ دا خلق اکثر پاونده دی۔ د دوی څخه خلق لمسی او غوندی جوړوی۔ د اندړو ټپه په شیلګره کښے اباده ده۔ څخه په جان مراد کښے هم استوګن دی۔ د دوی یو ښاخ جلال زی په زرمت کښے او یو کلے په شیبار کښے هم شته۔ د کاکړو یو ټپه چه په موسیٰ خیلو مشهوره ده۔ په اندړو کښے شامله ده۔ او د شیلګرے په قبله د هزاره جات غرونو سره جوخته اوسیږی۔

**ترکی:-** په شماره د اندړو نه زیات دی۔ دا خلق اکثر مستقل استوګن دی۔ او کوچیان په کښے کم دی۔ اسحاق زی چه په سهاک هم مشهور دی۔ څخه په زرمت کښے، څخه په لمغان کښے او څخه په یکه توت او تګاؤ کښے اباد دی۔ دوئ لږ لږ د هندوکش په درو کښے هم استوګن دی۔ خدر زی په مکور کښے د علی خیلو سره اباد دی۔ دوئ اکثر دکرکروندے کار کوی۔

په غلجیانو کښے څخه داسے قبیلے هم شاملے دی چه معنوی خپل ځانونه د غلجیانو هم قوم ګڼي۔ ولے غلجیان د دے خبرے نه انکار کوی۔ داسے قبیلے ناصر، خروټي، خدر زی او زمرئي دی۔

**ناصر:-** خپل ځان په هوتکو کښے شامل شمیری۔ لیکن هوتک دوئ خپل هم قبیله نهٔ ګڼي۔ د ناصرو مشهورے قبیلے دا دی۔ داود خیل، اتمان خیل، ملی زی، دا ښاخونه بیا په

خپلو کښې نورو ورو وړو ښاښونو کښې تقسيم دی۔

**خروټي :-** هم خپل ځانونه په غلجيانو کښې شامل شميري۔ ولې غلجيګان د دې نه انکار کوی۔ دا خلق د سليمان خيلو نه شرغاته ته اباد دی۔ اکثر زميندارۍ کوی۔ څينې کوچيان هم دی۔ د دوئ علاقه دکټه واز نه زياته اباده ده۔ ولې فصل په کښې يو کيږی۔ ځکه چه د دوئ فصلونه درې مياشتې په واوړو کښې پټ وی۔ غوا، غويان، ګډې، بزې او اوښان د دوئ لوئ دولت دې۔

**خدرزی :-** په مکور کښې د علی خيلو سره اباد دی۔ اکثر زميندارۍ کوی۔

**زيرمانی :-** اکثر د توخيانو په علاقه کښې اباد دی۔ مګر له کابله تر قندهارا پورې ځاځ په ځائې موندلې شی۔ دا خلق اکثر د کر کرونډې کار کوی۔ او څينې خلق ئې سوداګران هم دی۔

اګرچه دا خبره په وثوق سره معلومه نۀ ده چه د حاجي ميرويس نه وړاندې د غلجيانو مشر څوک وو۔ البته دومره يقينی ده چه د شهنشاه شاه جهان او بيا د اورنګ زيب په زمانه کښې ملک ملخائې چه د سلطان ملخائې په نامه هم مشهور دې۔ د شهنشاه اورنګ زيب د لوری نه د قلات او قرتو د لارې په حفاظت مامور وو۔ نوموړې د غلجيانو د توخی څانګې سره تعلق لری۔ سلطان ملخائې د ابدالی سردار خداداد سلطان سدوزی هم عصر وو۔ او د دې دواړو مشرانو په صلاح او جرګه د "جلدک" په خوا وشا کښې وادی ګرم آب د غلجيانو او ابداليانو ترمينځه پوله مقرر شوی وه۔ او د دې قبيلو ترمينځه دا تقسيم تر اوسه مستند ګڼلې شی۔

"سلطان ملخائې" د اغزګی او سرخ رود ترمينځه په جنګ دروازه کښې اووژلې شو۔ او د هغۀ نه پس د هغه ځوئې حاجي عادل د قام مشر شو۔ او تر ډيرې مودې د قام مشر وو۔ د دۀ نه پس "باڼ خان" چه د حاجي عادل ځوئې وو۔ د غلجيانو مشر شو۔ باڼ خان هم په يو جنګ کښې اووژلې شو۔ په دۀ پسې شاه عالم چه د علی خان ځوئې او د باڼ خان ورارۀ وو د قام مشر شو۔ او د هغۀ ځوئې خوشحال خان هم په خپل وار د قام مشری اوکړه۔ د احمد شاه ابدالی په زمانه کښې د خوشحال خان ځوئې اشرف خان د قلات نه د غزنی پورې علاقې حاکم وو۔ دا سړې د احمد شاه سره د هندوستان په اوله حمله کښې هم شامل وو۔ د تيمور شاه په زمانه کښې د اشرف خان ځوئې آمو خان د قام مشر وو۔ د شاه زمان او شاه محمود د جنګونو په دوران کښې د غلجي قبائيلو هم بادشاهئ ته بيا خوا او غزيدله۔

او د درانیانو او غلجیانو ترمینځه خونړی جنګونه اوشول. چه په هغې کښې غلجیانو ته ډیر زیان اورسید. د سدوزو نه چه حکومت بارک زو ته منتقل شو دغه وخت کښې هم ددوئ او د بارک زو تعلقات خراب وو. د امیر دوست محمد خان سره ځو ځله ددوئ ماتې ګډې پیښې شوی دی. سره ددې دومره زیانونو د امیر عبدالرحمان تر زمانې د توخی په ځانګه کښې د سلطان ملخانې کورنۍ با اقتداره وه.

## (ب) لودی قبائل

د روایاتو مطابق د لودی قبیلو مورث اعلیٰ ابراهیم دے. چه د شاه حسین غوری ځوئې او د شیخ بیټ نمسے وو. په تیرو پاڼو کښې د ابراهیم لودی د مهمو ځانګو لکه اسماعیل خیل، پړنګی، لوهاڼي، دوتاڼي، نیازی، سوری او مروت وغیره شجرے په تفصیل سره بیان شوے. اوس د دوئ لنډ تاریخ واوړئ.

په موجوده افغانستان کښې د ابراهیم خیلو (لودیانو) د نورو طائفو په نسبت لوهاڼي زیات دی. د دے طائفې اکثرے ځانګے په شیلګره، انډړو، قره باغ، قلات او قندهار کښې په اوپره ډول په غلجیو کښې اباد دی. د دے طائفې ځنے خلق د مهاجرو په شکل کښې په قطغن او بدخشان کښې هم اباد دی. دا خلق اکثر د زمکو څښتنان دی. ولے د کرکیلے د کار مړني نهٔ دی. او اکثر خلق ئے تجارت پیشه او په دے وجه دولت مند دی. د دے طائفې پنځه سوه کورونه په شیلګره او درے سوه کورونه په قره باغ کښې دی. د لوهانو نه پس په افغانستان کښې د نیازیانو شمیر زیات دے. د دے قام ځنې خلق پاونده دی، په ژمی کښې قندهار ته دروځي. او په اوړی کښې د کوه بابا په لمنو کښې د هزاره جات غزونو ته ځي. دا خلق د اوښانو او ګډو بزو رمے لري. د دے خلقو یو برخه ځائې شوی ده. او په شیلګره، قره باغ، جان مراد، مکور، قلات، غوربند او لمغان کښې میشته دی. د کرکیلے کارکوی. دا خلق په د ینداری او معامله کښې ډیر کره دی. خوش ګذرانه خلق دے. دوتاڼي هم په افغانستان کښې اباد دی. او د کرکیلے کار کوی.

د پړنګی طائفې په اوله کښې په مغربي افغانستان کښې اوسیدلے. ورستو دغه خلق د خپلو اوښانو او ګډو بزو د څرولو په غرض د کسی غر په لمنو کښې خصوصًا په دامان کښې د ټانک او دوړی په زمکه اباد شول. دلته دوئ تر ډیره وخته اباد وو. د بابر په وخت کښې

دولت خیلو، میاں خیلو، مروتو او نورو لوهانو په پرنګی طائف حمله اوکړه- او په جنګ کښے ددے طائف ډیر خلق اومړل- اود دے په نتیجه کښے دوئ د دامان نه هندوستان ته په کډه لاړل- په دامان کښے د پرنګیانو په زمکو لوهانو قبضه اوکړه- په دے قام کښے بهلول لودی په هندکښے د شیخ حمید لودی د کورنئ نه تقریبًا څلور سوه کاله پس د لودیانو حکومت قائم کړو- شیخ حمید لودی د سلطان ناصرالدین سبکتګین معاصر وو-

**لوهاني:-** د نوح یا نوحانی اولاد په سپین او تور لوهاني مشهور دے د تور لوهاني مشهورے طائفے دا دی:-

**دولت خیل:-** د نسب نامے نه ظاهره ده چه د نوح د "مما" ځوئے نه درے ځامن وو- په دوئ کښے د دولت خیلو ځانګه د خپل کثرت په وجه لور مما خیل هم په خپل ځان کښے شامل کړل- اوس د مما ټول اولاد په دولت خیلو مشهور دے- د دولت خیلو په پنځم پشت کښے کټه خان اوزیږیدو - د ده د اولاد ته کټی خیل وائی - د لوهانو ټول قاموته د ټانک په مزکه داستوګنے نه اول پاونده وو- او لرو ډیرو دکرکیلے کارکولو- د زمکو خاوندان په کټه واز کښے چه د غزنی جنوب مشرق ته د استوګنه لرله- د دوئ پاونده خلق به د "وانا" غرهٔ ته راتلل - په دے ورځو کښے مروت د سلیمان خیلو سره دیو ناموس دارئ په معامله کښے په بدئ اخته شول- مروت په سلیمان خیلو کمزوری وو- نو دوئ دکټه واز کډه اوکړه-

په دے وخت کښے به د دوئ د هرے ټپے خپل خپل خان وو- دوئ به ټول کارونه په جرګه کول- د لوانو د ټول قام خانی په کټی خیلو کښے وه- چه د دولت خیلو یو ښه وه- ولے دا خان به د لوهانو د ټولو طائفو په مرضئ مقرر کیدلو- او هغهٔ به د هرے طائفے سره د برابرئ او عزیز ولئ سلوک کولو- د میلادی د نولسمے صدئ په اغاز کښے قتال خان بن سلیم خان د قام مشر شو- دا سړے د خوئ نه ډیر تریخ اود خلقو سره به ئے د سپکاوی سلوک کولو- له دے جهته دولت خیلو او کټی خیلو په مشوره په مشوره قتال او د هغهٔ یو ځوئے اکبر خان اووژل- ولے د هغهٔ مشر ځوئے سرور خان کابل ته په تیښته لاړ- د غه وخت کښے په کابل کښے د امیر دوست محمد خان د حکومت اغاز شوے وو- سرور خان ته د امیر دوست محمد خان له خوا د عبدالرحیم هوتک په مشرتابهٔ کښے څلور زره لښکر ورکړے شو - د دے لښکر په کومک سرور خان بیا په خپل ځائے شو - ولے څه موده پس سرور خان هغه ټول کسان اووژل چا چه د ده پلار او

ورور وړلی وو۔ او یا په دے مشوره کښے شامل وو۔ او د دے نه پس ئے د خپل حفاظت په غرض پنځه سوه سپاهیان اونیول او خپله قلا ئے ښه مضبوطه کړه۔ په سنه ۱۸۳۹ء کښے سرور خان په کرمه کښے مړ شو۔ او د هغهٔ په ځائے الله داد خان د قام مشر شو۔ په سنه ۱۸۳۶ء کښے سیکانو د نو نهال سنگهه په مشرئ کښے په ټانک حمله اوکړه۔ الله داد خان د خپل قام د حمایت نه محرومه وو۔ نو هغه مسعودو ته او تښتیدهٔ۔ او د هغه ځائے نه کابل ته لاړ۔ په ټانک د سیکانو قبضه شوه۔

په دے ورځو کښے امیر دوست محمد خان په خپلو خولو کښے ډوب وو۔ نو الله داد خان خالی لاس بیا د مسعودو علاقے ته راغے۔ سیکانو د ټانک ریاست ملتانی پښتنو ته د خراج په ډول ورکړے او د دے په نتیجه کښے الله داد خان به هر وخت د ملتانی پښتنو سره په جنگونو کښے بوخت وو۔ اخر په دے هله ځوله کښے الله داد خان مړ شو۔ په سنه ۱۸۴۹ء کښے د سیکانو ریاست سقوط اوموند۔ او په پنجاب او سرحد د انگریزانو قبضه راغله۔ د هغه وخت د الله داد خان ځوئے شاه نواز خان د انګریزانو د لورې د ټانک د ریاست والی او منلے شو۔

**دمیاں خیلو ځانګه:۔** دوئ هم د دولت خیلو سره یو ځائے دامان ته راغلی وو۔ او د پوند توب ژوند ئے پرے ښود۔ اوس د دے خلقو استوګنه په درابن ده۔ په اوله کښے د دے قام خلق پاونده وو۔ مالونه به ئے ساتل او تجارت به ئے کولو۔ په دے زمکو د دوئ نه اول سوری او سروانړي طائفے ابادے وے۔ چه زمان خان کټي خیل دا طائفے د دے علاقے نه په شړلو مجبور کړے نو دغه وخت دولت خیلو د ټانک زمکے په خپل مینځ کښے اوویشلے۔ څو کاله پس د بختیارو طائفے چه په نیکه بده کښے دمیاں خیلو سره شریکه وه۔ د سروانړي قام په بدئ اخته شول۔ او د میاں خیلو په کومک ئے سروانړو ته شکست ورکړو۔ او دوئ د سروانړو زمکے په خپل مینځ کښے اوویشلے۔ د دے نه پس د میاں خیلو څنے خلقو مستقله استوګنه اختیار کړه۔ او څنے پاونده پاتے شول۔ او تر اوسه پورے د بختیارو او میاں خیلو څنے خلق پاونده او څنے ځائے دی۔ د میاں خیلو خان لږ اختیارات لری۔ د دوئ د پاونده خلقو خان بیل وی۔ د میاں خیلو خلق شریف او ښته من دی۔ د دوئ سرداری د سید خیلو په ځانګه کښے ده۔ چه د خدو خیلو سره اړه لری۔

**تتور:۔** په شمیره کښے لږ دی۔ دوئ په عادتونو او دودونو دستورونو کښے

بیغی د دولت خیلو په څیر دی - د کرکیلے کارکوی -

**نیازیان :-** دوئ هم د لودیانو څانګه ده- دا خلق په اوله کښے سټیګر او دغزنی په خواؤشا کښے اباد وو - د دے علاقے نه دوئ د اُندړو او غلجیانو د غلیمئ په وجه کډه اوکړه- په سلـ۱۴۵۱ء کښے چه بهلول لودی په هند کښے د پښتنو سلطنت قائم کړو- نود یو فرمان په ذریعه ئے د روه پښتانهٔ هند ته او بلل- د دے په جواب کښے د نیازیانو بے شمیره خلق هند ته لاړل- او په عسکری څانګه کښے شامل شول- په نیازیانو کښے هیبت خان نیازی او عیسیٰ خان نیازی د شیر شاه سوری په وخت کښے د ډیر عروج خاوندان وو- ولے د شیر شاه نه پس د سلیم شاه په وخت کښے نیازیانو ته دسلیم شاه د فوځونو نه لوئے زیان اورسید- او د دے صدمے نیازیان ډیر کمزوری کړل- نیازیان داباسیند په دواړو غاړو د کالا باغ نه تر پنیالے پورے په اوږ دو او دغتګو دعزهٔ د شرقی لمنے نه تر میانوالی پورے په پساره کښ ود اباد دی - او دا علاقه د نیازیانو په علاقه مشهوره ده-

**دوتاني :-** دوئ هم په لودیانو کښے کړ دی- لږه طائفه ده- اکثر پاونده دی-ځنے دوتاني د ‹‹وانا›› په علاقه کښے استوګنه لری-

**خیسور :-** دا خلق هم ځان په لودیانو کښے شمیری- لږ خلق دی- داباسیند په قبلئیزه غاړه اود ډیره اسماعیل خان په ضلع کښے اباد دی- دوئ په عمر خیلو هم مشهور دی- د دوئ ځنے خلق د عیسیٰ خیلو د علاقے په قطب لوری اود پنیالے د یو ورکوټي غرهٔ په خوا کښے اود مروتو په علاقه کښے پراته دی- د دوئ په علاقه کښے ‹‹ عزمان ›› ډیرے کیږی -

**بلیاح :-** دا خلق ځان په نیازی کښے ګڼوی - اوکله په دولت خیلو کښے - لږ خلق دی- اکثر په پنیاله کښے د غونډ شیخ بدین عزهٔ په خوا کښے اوسیږی -

**مروت :-** دا خلق په سپین لوهاني مشهور دی- په اوله کښے دا خلق په کټه وازکښے اوسیدل- اوس هلته کښے دغلجیو سلیمان خیل اباد دی- د کټه واز نه د دوئ د راتلو وجه دا ده چه د آزاد خان سلطان خیل د کالهٔ نه د هغهٔ مریئ یوه ښځه اوتښتوله- او مروتو ته په ننواتی لاړ- دا واقعه غالبًا چه په څلورمه صدیٔ هجری کښے شوی ده-سلیمان خیلو د مروتو نه دا خپل مجرمان او غوښتل- ولے مروت د پښتون ولئ په ننګ په هغوی اودریدل- نتیجه دا شوه چه د سلیمان خیلو په ننګ د غلجیو ټولے طائفے اودریدلے- او

د مروتو په مرسته د لوهانو ټول اولس اوودریده- او د دوئ ترمینځه یو سخت جنګ اوشو.
چه په هغ کښې غلجیان کامیاب شول- او مروت سره د ډیره زیانه د ګهه واز د علاقے
نه په وتلو مجبور شول- او د ټانک په علاقه کښې ئے څه زمکه ترلاسه کړه- څو څه موده
پس دولت خیلو مروت ددے زمکے نه پاځول- ولے ډیر زر مروتو چیلے زمکے بیا ترلاسه
کړے- څوکتی خیلو چه د دولت خیلو څانګه ده. د ګنډاپورو په کومک دوئ بیا د خپلو
زمکو نه اوشړل- دا ټل مروت د تهل په قطبی برخو کښې میشته شول-

د مؤرخینو په خیال کښې داسلام نه وړاندے د دامان په علاقه کښې هنود اویونانیان
اباد وو- د دوئ د ودانیو اثار لا تراوسه پورے دا عبد خیلو د عزه په لمن کښې دباشتي
خیلو په علاقه کښې موجود دی- دا هم مشهوره ده چه دغه هنود د سلطان محمود غزنوی
او سلطان شهاب الدین غوری په زمانه کښې ددے علاقو نه اوشړلے شول- د دے غلقونه
پس په دے زمکه پوټهی قام استوګن شو- ددے خلقو اصلی حالات معلوم نهٔ دی- داخلق
سارنګ خیلو، عیسے خیلو او د نیازیانو نوروطا ئفو چه د ټانک نه راتلل اوشړل- او د
هغوی په زمکو اباد شول-

نیازیانو په هغه برخه کښې چه اوس په کښې پهاړخیل اباد دی- د ګمبیلے نه د قطب په
لور ودانی شروع کړه- او د رود نه ئے درے ریلے اوښکلے- او هغه زمکه ئے ځان له غوره
کړه کومه چه د ګمبیلے اوکرے ترمینځ پرته ده- دغه برخه بیاد جنوب پورے د دوئ مال
څروو- په هغه ورځو کښې د نیازیانو سردار "مدی سارنګ" وو- چه ډیر مالدار وو-او
تراوسه پورے په دے علاقه کښې مشهور دے-

ولے نیازیانو په دے علاقه لږه موده قبضه اولرله- وروستو د نیازیانو مهیار نباخ
د سارنګ خیلو او عیسی خیلو نه په دے خبره مرور شو چه دوئ ته ئے برخه نهٔ ورکوله-دوئ
د مروتو نه د مرستے خواست اوکړو- او مروتو دمهیار په مرسته کښې په نیازیانو حمله اوکړه-
اخرصلحه اوشوه- لیکن مروتو د نیازیانو ډیره زمکه لاندے کړه-

د نیازیانو په قبائیلو کښې میچن خیل ستانه او فقیر خلق دے- مروتو هم په دوئ
څه غم غرض او نهٔ کړو- او تراوسه پورے دوئ په ټټي میچن خیل کښې اباد دی- داواقعات
او په دے علاقه د مروتو قبضه د اکبر بادشاه په زمانه کښې شوی ده- ددے واقعاتو
ټاکلے کال معلوم نهٔ دے- ولے د اثارو او واقعاتو نه دا معلومیږی چه دا خلق به اندازاً د
(۳۶۰) کالو راسے په دے علاقه قابضان وی- د اکبر باچا د حکومت په ابتدائی کالونو کښې

په دے علاقه لا نیازیان اباد وو۔ په دے بنا د مروتو قبضه به هم د دومره مودے نه‌را په ایسته شوی وی۔ مروتو دا زمکه په څلورو برخو اوویشله ۔ سلار یو برخه، نوناخیل یو برخه، موسی خیل یو برخه، او تپي یو برخه۔ ورستو په دے کښے تبدیلی اوشوه۔ او په دے ډول حصے مقرر شوے ۔ تپی او نونا خیل یو برخه، موسی خیل یو برخه، درے پلاری یو برخه، او سلار یو برخه۔ اوس د دے خلقو استوګنه په دے ډول ده۔ د لمر لویدو خوا ته تپي، موسی خیل او نونا خیل، په مینځنۍ برخه کښے بهرام او په نمر خاتۀ خوا ته درے پلاری اوسیږی۔

## هغه متفرق پښتانۀ چه د مروتو په علاقه کښے اباد دی

**(۱) ملاخیل :-** دا خلق د مروت په کلیو کښے ګډ وډ اوسیږی۔ ستانه خلق دی۔ د دے طائفۀ مشر نیکۀ ملا عثمان نومیدهٔ۔ چه یو نیک سړے وو۔ دا متل په دے علاقه لا تر اوسه مشهور دے چه الحمدُلِلّه څو هر څوک لولی۔ وئے څوله د ملا عثمان غواړی۔ دا خلق د مروتو سره داسے خلط ملط شوی دی چه جدا کول ئے ګران دی۔

**(۲) ممریز خیل :-** دا څانګه د مروتو په قام ورګډیږی۔ په دولت ئے د بهرام خیلو نه برخه اخستی ده۔ او په اولس کښے په مروتو کښے حساب دی۔

**(۳) ملک زی :-** دا خلق په اصل کښے نیازیان دی۔ په موسیٰ خیلو (مروتو) کښے ګډ شوی دی۔

**(۴) والی وال :-** څنے دوئ خټک بولی۔ ولے د دے حقیقت نشته۔ البته د دے خلقو د یو مشر نیکۀ نامه خټک وه۔ نو دغه خبره د غلط فهمئ باعث شوه۔ په اصل کښے دا خلق د مروتو د اتمان خیلو یو ذیلئ ده۔

**(۵) منګو خیل :-** څنے خلق دوئ نیازیان بولی۔ ولے دوئ د مروتو د موسیٰ خیلو په څانګه کښے د بائیزی سره ګډ شوی دی۔

**(۶) خان خیل :-** په دولت خوا زی کښے ورګډ شوی دی۔ د بهرام خیلو یو ښبه ده۔

## د مروتو په علاقه کښے نور قامونه

**(۱) د شیخ شاه روحانی اولاد :-** دوئ په اصل کښے سیدان دی۔ او په اولس کښے د پیرئ مقام لری۔ اکثر د کرکیلے کارکوی۔ د شیخ محمد شاه روحانی مزار د زوملے د مهو زو نمر خاتۀ ته د غرهٔ په نیمائ کښے دے۔

(۲) **میچن خیل**:- دوئ د جاکو اولاد دے چه د نیازی یو څانگه ده۔ میچن پهٔ اصل کښے څهٔ بل نوم لرلو۔ ولے ډیر چابک اوګرندے وو۔ نو پښتنو پرے د میچن نوم کیښود۔ دا یو نیک سړے وو۔ پښتانهٔ دهٔ د اولاد ته پهٔ درنه سترګه ګوری۔ پهٔ خطرناکو موقعو کښے چه هرڅوک د میچن خیلو کور ته ننواتی ورغلو۔ نو هغه خلاص وی۔ میچن خیل پهٔ افغانستان کښے ګڼ وډ اباد دی۔ د بنوں پهٔ علاقه کښے د میچن خیلو یوه څانګه د کرے سیند پهٔ قطب پهٔ یو ځائے کښے چه تتی میچن خیل مشهور دے استوګنه ده۔

**عیسیٰ خیل**:- د عیسیٰ اتهٔ څانګے دی۔ ابو خیل ، خواجه خیل ، ماما خیل ، محمد زی ، زکو خیل ، میرا خیل ، داورشاه خیل ، احمد خیل ، پهٔ د یو کښے د دریو ځامنو اولاد پاتے دے۔ دا سے معلومیږی چه د نورو ځامنو اولاد ئے د سلیم شاه پهٔ جنګونو کښے وژلے شوے دے۔

**مشواني**:- دا طائفه هم د نیازیانو ده۔ د دوئ د نیکهٔ نامه موشیانی وه۔ او پهٔ استعمال کښے د موسیانی ، موشیانی نه مشواني شوه۔ پهٔ اوله کښے دوئ د سارنګ د اولاد سره د اباسیند پهٔ نمر ختیزه غاړه اباد وو۔ د دوئ یو ښاخ داؤد خیل پهٔ داؤد خیلو کښے او یو ښاخ موندی خیل پهٔ میانوالی (رتی) کښے اباد دے۔ مشواني د مروتو او عیسیٰ خیلو پهٔ دشمنئ کښے د مروتو ملګری وو۔ دا طائفه اوس پهٔ دادی خیل او شادی خیل سره ویش ده۔

**سلطان خیل**:- دا هم د نیازیانو د سارنګ نه یو څانګه ده۔ پهٔ اوله کښے پهٔ میانوالی کښے اباد وو۔ وروستو د کورنو جنګونو پهٔ نتیجه کښے ئے د غه زمکے پرے ښودلے۔ او د عیسیٰ خیلو پهٔ مصلحت د څیکو د غرهٔ پهٔ څوا کښے استوګن شول۔

د ابراهیم (لودی) د ټول اولاد حال مختصراً بیان شو۔ پهٔ اوسنی افغانستان کښے دا خلق پهٔ ډیر شمیر کښے نشته۔ د دے قام ډیر خلق د اباسیند پهٔ غاړه پهٔ ډیره اسماعیل خان او ټانک او نورو ځایونو کښے اباد دے ۔ د لودیانو او سوریانو د سلطنت پهٔ وخت کښے د دے قام ډیر خلق پهٔ هند کښے اباد شوی دی۔ د هند لدهیانه نومے ښار پهٔ هند کښے د دے خلقو د استوګنے یادګار دے۔ دے خلقو د ډیرے ځوانئ زمانے پهٔ خپل مینځ کښے اجتماعی تشکیلات لرل۔ پهٔ هند کښے د سلطنت قائمولو نه اول دوئ څنے دا سے رواجونه لرل چه وئیل به ئے ځایه نهٔ وی۔

د لوهاني ، پړنګی او مروتو وغیره هر قام به د سترملک پهٔ نامه یو رئیس لرلو ۔ دا رئیس به د قام پهٔ اتفاق ټاکلے شو۔ د ضرورت پهٔ وخت کښے به د قام سپین ږیری پهٔ سترملک را غونډیدل۔ پهٔ دښتی جرګه کښے چه به کومه خبره فیصله شوه نو هغه به ئے د

غلو ییښتي نوے یو جرګې په ذریعه په ټول قام منودله - د مجرمانو نه به ئې پوښتنه کوله. او هغوی ته به د خپلے صفایئ موقع ورکولے شوه - چه نورو قامونو سره به جګړه پیدا شوه نو دغه وخت به ستر ملک د سرلښکر کارکولو - او د ده د اثر لاندے به نور واړه واړه ملکان هم وو - چه هغوی به د غلو ییښتي په مشوره د ستر ملک احکام په قام کښے اجرا کول. په اوله زمانه کښے دے خلقو حکومت ته څه مالیه نهٔ ورکوله - ولے د اورنګ زیب په زمانه کښے د هغهٔ ځوئے بهادرشاه د دوئ نه څه رقم د مال شمارئ په ډول اخستے وو - احمد شاه ابدالی به د دوئ نه څو اوښان د مال شمارئ په نامه اخستل.

**سروانړي :-** د روایاتو مطابق سروانړے د شاه حسین غوری ځوئے دے. چه د مور نامه ئې مهئ وه - وئیلے شي چه د سلطان شهاب الدین غوری په زمانه کښے دے خلقو د کوه سلیمان په لښتو کښے د دراېن او چودهوان په زمکو استوګنه لرله - د سروانړي اولی فانی او ریاست د سرپیال په ځانګه کښے د شیخ ملیح قتال د مشرانو سره مخصوص وو - دا هم وئیلے شي چه دا موجوده دراېن د شیخ ملیح قتال اباد کړده دے - دا خلق د همایون په زمانه کښے د خپلے بے اتفاقئ له کبله ډیر کمزوری شول - او په اخر کښے د دے علاقے نه په وتلو مجبور شول - دیو ناموس دارئ په معامله د دوی او سوریانو ترمینځه دښمنی وه - او د هغې په وجه دواړه طائفے ډیرے کمزورے شوے - څه موده پس بختیارو په دوئ حمله اوکړه - او د هغې په نتیجه کښے دوئ در په دیکه شول - ځنے د پیښور په علاقه کښے اباد شول - او ځنے پنجاب ته لاړل - بختیارو او میان خیلو د دوئ په زمکه قبضه اوکړه -

د مالیرکوټلے نوابان د سروانړي په ښاخ کښے د سرپیال سره تعلق لری - د دے ریاست بانی شیخ صدرالدین صدر جهان وو - چه د شیخ ملیح قتال په ځانګه کښے دے - دا سړے یو خدا رسیده او ولی وو - بهلول لودی چه د دهلی د فتح په تکل روان وو - نو د دهٔ سره ئې ملاقات کړے وو - او بیا د دوستو ئې ورله خپله لور هم په نکاح ورکړه - د هغې ورځې نه پس د دوئ د ریاست بنیاد اولګیدهٔ -

پنځمه طبقه

# کرلاني قبائيل

(۱) دله زاک ، اورک زی ، منګل وغیره



# کرلاني قبائل

## (ب) افریدی



# کرلانی قبائل

(ج) زدران یا جدران



# کرلاني قبائيل

(د) خټک

## لقمان (بن برهان)



# کرلانی قبائل

(خٹک - بولاق)

## بولاق (بن لقمان)




## ککے (بن تورمان بن لقمان بن برهان)



# کرلاني قبائل

(۵) اتمان خیل



# کرلاني قبائل

(و) خوګياني




# کرلاني قبائل

(ن) وزير - مسعود



# کرلاني قبائل

محمود خیل (وزیر) ـ اتمان زی



# براهیم خیل -وزیر- اتمان زی



# ولی خیل وزیر- اتمان زی



وزیر ۔ احمد زی

# احمد زی



# کرلانی ۔ مسعود بن محمود بن خدر بن وزیر بن سلیمان



# بهلول زی (مسعود)



# کرلاني قبائل

(ح) شیتک دوړ



# کرلاني قبائل



# سہی (بن کیوی)


منداڼ
سناور
عیسکی
ټپئ
زوجه اول
زوجه دوم
سوکړی
خوکړی
سعید خیل
شامد خیل
زیبا خیل
سړلړی
ولی خیل
شوزی خیل
حسن خیل
کمال خیل
میراخیل
اسماعیلخیل
کړی
تغلخیل
زوجه اول
زوجه دوم
زوجه اول
زوجه دوم
دوری خیل
شخل خیل
هاتی خیل
ملیک خیل
دره خیل
منده خیل
رسولخیل
دولت خیل
تاجی خیل
متی خیل
میوه خیل
نظام خیل
بابرخیل
ځمله ضله خیل
جندوخیل
اسماعیل خانی
ببل
میلو
بهادرخیل
وزیرخیل
یعقوب خیل
حسن خیل
سکندرخیل
شمسی خیل
لنګرخیل
ماک خیل
سمل خیل
اینغل
هاتی خیل
ملیه خیل
محبت خیل
همل خیل
دشتی خیل
مستی خیل
هیبت خیل
مصری خیل
بازی خیل
قتح خیل
میتاخیل
چیت
بادیو
باشت خیل
عنایت خیل
خوبی خیل
افضل خیل
سکندرخیل
کنشی خیل
لیدی
بنګش خیل
خټک خیل
خانی خیل
صابوخیل
شهداد خیل
میاں داد خیل
قاسم خیل
ملک دین
کینګر
حمید رخیل

سوریانی بن شیتک

# سوریانی



# کرلانی

(ط) اسماعیل - معروف بنگښ



دکرلاني قبائيل نسب نامے بيان شوے۔ په کرلاني طبقه کښے مشهورے قبيلے دادي:۔ دله زاک ، اورک زی، خوګياني ، افريدی ، خټک ، وزير ، مسعود ، شيتک (بنوڅي) دوړ ، زدران (جدران) زازی ، توری ، بنګښ او اتمان خيل ۔ د دے قبيلے لنډ شان حال اولولئ۔

**دله زاک :-** د رواياتو مطابق د دله زاکو دوه طائفے دی۔ لودی خيل او يعقوب خيل دا دواړه څانګے په خپل مينځ کښے په وړو وړو خيليو کښے تقسيم دی۔ لکه چه د شجرے نه معلوميږی۔

د رواياتو مطابق دله زاک اول پښتانهٔ وو چه په وادئ پيښور کښے دا باسيند ترغاړے استوګن شوی وو۔ وئيلے شی چه دوئ په دے علاقه باندے د هندو شاهانو په زمانه کښے قبضه کړی وه۔ د سلطان محمود غزنوی په وخت کښے دوئ د دهغهٔ سره د هند په حملو کښے ملګری وو۔ او د خپل يو مشر ملک يحيٰی په مشر تابهٔ کښے د سومنات په حملو کښے هم شامل وو۔ د مرزا الغ بيګ ترزمانے دا خلق په وادئ پيښور کښے د اقتدار خاوندان وو۔ ليکن د رواياتو په بنا هرکله چه د مرزا الغ بيګ د لاسه خابنی خيل او د هغوی حليف قبائيل د کابل د علاقے نه د وادئ پيښور په لور په مهاجرت مجبور شول ۔ نو د دے نه پس د دے نووارد و پښتنو او دله زاکو ترمينځه جنګونه شروع شول۔ او د هغ په نتيجه کښے دله زاکو ته ډير زيان اورسيد۔ ولے د بابر په وخت کښے د دے خلقو طاقت لا ښهٔ په ځائے وو۔ او دوئ د بابر په هره حمله کښے ملګری وو ۔ او داسے معلوميږی چه د بابراو دوئ ترمينځه تعلقات خوشګوار وو۔ د پښتنو په شجرو کښے د دله زاکو حيثيت واضح نهٔ دے ۔ څينے خلق دوئ سيدان ګڼی او څينے داسے هم دی چه دوئ هډو پښتانهٔ نهٔ ګڼي ۔ ولے دا دواړه خبرے غلطي دی۔ دله زاک د پښتنو يوه اهمه قبيله ده۔ او نهٔ صرف د رواياتو په بنا بلکه د بابر د ليکنو نه هم د دے خلقو کثرت او اهميت معلوميږی۔ د دے نه علاوه د نورو پښتنو قبائيلو په شان بابر دا خلق (دله زاک) هم د افاغنه په نامه ياد کړی دی۔ او دا په دے دلالت کوی چه دله زاک د پښتنو يو مهمه قبيله ده۔ ولے زما په خيال کښے دله زاک په "کرلاني" قبائيلو کښے شاملول څه موزونيت نهٔ لری۔ دکرلاني په زيله کښے ټول پښتانهٔ قبائيل بے د خټکو د يوے حصے نه د وادئ پيښور نه په سويلي علاقو کښے اباد دی۔ دا ټول قبائيل اګرچه په نن وخت کښے په خپل مينځ کښے څه جزوی اختلاف لری۔ ولے په دے ټولو قبائيلو کښے ډيرے خبرے مشترکے دی۔ مګر د کرلاني قبائيلو او دله زاکو ترمينځه د اتحاد يوه خبره هم نشته۔ د دے نه دا معلوميږی چه کرلاني قبائيل او دله زاک دوه جدا جدا قبيلے وے۔ زما په خيال کښے دله زاک د هغه خلقو

اولاد کنډل پکار دی کوم چه په ډیرے پخوانئ زمانه کښے هیرو دو تس د ګندهاریانو په لفظ یاد کړی دی. نن ورځ په حیثیت د مهمے قبیلے دا خلق نشته. (البته د پیښور په ضلع کښے د دوی یو نیم کلے موجود دے. او په چچ هزاره کښے څه اباد دی.

(ب) :- **اورک زی** :- د سپین غر په شرقاتهٔ لوری د تیراه په سویلی کنډیو کښے اباد دی. په ضلع کوهاټ او پیښور کښے هم د دوئ ابادی شته دے. د روایاتو مطابق د بنګښو نه وړاندے د بنګښو په علاقه هم داورک زو قبضه وه. او د بنګښو سره به د دوئ اکثر بدی وه. اخرچه دواړه قبیلے په جنګونو ستړی شوےنو د درسمند په مقام ئے جرګه اوکړه. او ه داځ ه نوے یو ټم د دوئ ترمینځه فیصله اوکړه. د داځ دا فیصله ډیره ساده او لنډه وه. هغه اووے داځ حو داسے وائ چه " غر داورک زی او سمه د بنګښ . د دے فیصلے نه پس په دے تقسیم عمل او شو.

د اورک زو په تولو څانګو کښے دولت زی او مسوزی په شمیر کښے زیات دی. او بیا په دولت خیلو کښے مموخیل زیات شوی دی. په دوئ کښے سوا د محمد خیلو د څانګے نه نور اورک زی سنی مذهب دی. محمد خیل د شیعه فرقے سره تعلق لری. ټول قام د سمل او ګار په دوو ګوندیو کښے تقسیم دے. په عاتونو او رسم ورواج کښے دا فریدو په څیر دی.

۳ - **منګل** :- د روایاتو مطابق دا خلق د نن نه څه شپږ اووهٔ سوه کاله وړاندے د بنون په علاقه کښے اباد وو. لیکن د شیټکو د غلبے له کبله دوئ د دے علاقے نه په وتلو مجبور شول. او د خوست په علاقو کښے استوګن شول. اوس هم په دے علاقو کښے میشته دی. زدران د دوئ نه سویل ته پراتهٔ دی. او د دوئ ترمینځه تل بدی وی.

۴ - **هنی** :- د پښتنو د څنے مؤرخینو لکه د حیات افغانی په خیال کښے هنی د منګل ورور او د کرلانړ قبائیلو یوه څانګه ده. ولے د خورشید جهان د مؤلف په خیال کښے هغه " هنی " چه د منګل ورور وو. د هغهٔ اولاد اوس نشته. د دهٔ د خیال مطابق په کومو ورځو کښے چه د شیټک اولس په بنون قبضه اوکړه. او منګلے د دے زمکے نه اوویستل. نو په دے جنګونو کښے د "هنی" اولس هم ډیر زیان من شو. او د دوئ پاتے شونی خلق هندوستان ته په کډه لاړ. د خورشید جهان مطابق کوم هنی اولس چه نن ورځ د منګلو سره استوګن دے. دوئ په اصل کښے سیدان دی. او د سید محمد ګیسو دراز د یو څوی اولاد دے. د " هنی " قبیلے مشهوره څانګه زومخت یا زوئښت (زونمشت) ده چه د بنګښو ، اورکزو او په کرمه کښے د سپین غر شرقاتهٔ لوری ته په غرونو کښے اباده ده. دا خلق په خپل مینځ کښے په دوو څانګو کښے ویش دی. سبهٔ

مضبوط او تکړه خلق دي - د کرکيلے کار کوي - د پښتنو د قبائيلي ګوندئ په لړ کښے دا خلق د « سمل » په ګوندئ کښے شامل دي -

۵- **وردک** :- دا خلق هم ځان ځان په سيدانو کښے شميري - چه په کرلاڼي طبقه کښے شامل شوي دي - د خورشيد جهان مطابق دا اولس هم د سيد محمد ګيسو دراز اولاد دے - د دے قام د علاقے قبلے ته پوله د هزاره جات غرونه دي - باقي درے وارو طرفو ته د دوئ نه غلجي قبائيل پراته دي - د دوئ علاقه يو اوږده کنډه ده - او په قبله شمال ته ئے غرونه دي - دا علاقه د رود غزني نه سيرابيږي - او قطبي حصه ئے د رود لهوګر نه اوبه مومي - تنګي، شيخ آباد خوات، سه آب، او جغتو د دوئ په علاقه کښے مشهور کلي دي - د دوئ علاقه سر سبزه او اباده ده - د مڼې فصل ئے کم وي - مضبوط او زړور خلق دے - په « وردګو » کښے د « ميري خيلو » څانګه په شير کښے زياته ده - په دوئ پسے مهيار او بيا د نورزي څانګے دي - د وردکو ځنے خلق په پيچ کښے هم اباد دي -

۶- **کرلاڼي قبائيل (افريدي)** :- د روايتو مطابق د افريدو د مشر نيکهٔ نوم عثمان وو - چه د يو واقع په وجه په افريدي مشهور شو - د ده دوه ځامن وو - ماڼي او ملي - د ملي اولاد کم دے - او څه لږ ډير په بنګښو کښے اباد دے - د « ماڼي » درے بنځے وے - يوه ترينه، بله زرينه او دريمه فاطمه - د دوئ د اولاد تفصيل د شجرے نه څرګند دے -

په موجوده وخت کښے د افريدو توله قبيله په دے اتو څانګو مشهوره ده - ملک دين خيل، قنبر خيل، کوکي خيل، زخه خيل، اکاخيل، سپاه، قمري او ادم خيل - دا اولس په خيبر دره، کوهاټ او تيراه کښے اباد دے - د دوئ د نمرخاته پوله د ختکو سره لګيدلې ده - سويل ته د دوئ نه اورکزي او بنګښ پراته دي - او د سپين غره څوکې - د دوئ نه په قبله شينواري او په قطب ئے د مهمندو علاقه ده - د پيښور په علاقه کښے د کچه ګړهۍ نه واخلے ان د ننګرهار تر علاقے قبله په سويل غرونو باندے د دوئ قبضه ده - اګر چه د تيراه ډيره علاقه د دوئ په قبضه کښے ده - مګر په تيراه کښے هغه علاقه چه د غرونو په مينځ کښے د ميدان په نامه او د خپلے ښے آب و هوا د پاره مشهوره ده - د دے خلقو اصلي مرکز ګڼلے شي - ويلے شي چه دا خلق په تيراه کښے په څوارلسمه صدۍ کښے اباد شوي دي - ليکن دا خبره درسته نهٔ ښکاري - د ۵۰۰ ق م په خوا و شا کښے چه يوناني مؤرخ هيرو ډوټس د پسيتکا (پښتون خوا) د کومو څلورو قامونو ذکر کړے دے - په هغو کښے د يو قام نامه « اپرې ريتي » هم ده - او دا لفظ (اپرې ريتي) د اپريدي سره د فقه اللغت د مخه مطابق منلے شوے دے - د دے نه دا معلوميږي چه دا اولس

د ډیرې پخوانۍ زمانې راسې دلته اباد دے. سکندر اعظم چه د هند د حملې په غرض د خپل فوځ کومه حصه د خیبر په لاره لیږلې وه. د هغې فوځ سره هم دے خلقو لاس اچولے وو.

د دره خیبر په استوګنو قامونو کښې افریدی ډیر زړور او توریالی خلق دی. د خیبر دره د افغانستان او پاکستان ترمینځه د قدیمې زمانې نه مشهوره ده. دا دره د جمرود نه د لنډی خانې پورې (۳۳) میله اوږده غزیدلې ده. په دے دره کښې د خیبر ریلوے لائن چه په ۱۹۲۵ء کښې مکمل شوے دے. دا انجنیړۍ د فن یو لویه کارنامه ګڼلے شي. د دے ریلوے لائن نه علاوه د جمرود نه تر لنډی خانې پورې د موټرو لارو یو بهترین سړک هم موجود دے. د دے د حفاظت د پاره ځائے په ځائے فوځي څوکۍ او قلاګانې جوړے دی. دا تاؤ راتاؤ سړک د جمرود نه شاګئ ته او بیا علي مسجد ته رسي. دا مقام د سمندر د سطح نه درے زره فټه اوچت دے. د علي مسجد نه وړاندے سړک په یوه اړته کنډۍ کښې تیریږي. دلته د ذخه خیلو قلعه نما کلي دی. دا سړک د لنډی خانې په مقام تهانې ته ور پریوزي. د خیبر دره د تاریخ په هره دوره کښې اهمه پاتے شوې ده په دے وجه د دے درے استوګن قامونو ډیر اهمیت لري. په دے دره کښې اپریدي، شینواري، ملاګوري او شلماني آباد دی. په دے ټولو اولسونو کښې افریدي زیات طاقتور دی. د "باغ جمات" د دے خلقو د سیاسي او مذهبي سرګرمیانو مرکز دے. د دوئ په خیال کښې دا مقام ډیر اهمیت لري. د خیبر درے په څواوشا کښې د پخوانۍ زمانې ډیر اثار موندلی شوی دی. او د دے نه دا قیاس مرسته موهي چه دا دره به په ابتدائي زمانه کښې ډیره اباده وه. د دے علاقے نه چه کوم اثار قدیمه برآمد شوی دی. هغه د بده د عهد سره تعلق لري. او په دے علاقه کښې د بده د عهد د اقتدار نمائندګي کوي.

د دے درے استوګن قامونه د تاریخ په هر دور کښې ازاد راغلي دی. په انګریزي دور حکومت کښې د انګریزانو او افریدو ترمینځه څو ځله ماتے ګوډے پیښے شوی دی. ولے دوئ د انګریزي اقتدار سخت شدیده مقابله کړې ده. د قیام پاکستان نه پس دے خلقو هم د پښتنو د نورو قبائیلو په شان په خپله مرضۍ په پاکستان کښې د شمولیت او د پاکستان د وفادارۍ اعلان اوکړو. افریدي هم رنګ چه پخوا د خیبر څوکیداران وو. د غه شان اوس هم دی.

د افریدو مختلف څانګے په خپله خپله علاقه کښې په دے دستور اباد دی:-
کوکي خیل په وادۍ راجګل او د وادۍ بازار په څه حصه کښې د لالا چینې او د جمرود

نه د علی مسجد پورے اباد دی۔ د ژمی په موده کښے کجورئ ته راکوزیږی۔ زخه خیل دخپل جغرافیائی محل وقوع له کبله د زیات اهمیت خاوندان دی۔ د پیښور نه افغانستان ته دخیبر د لارے نه علاوه بله لار د دوئ په علاقه کښے تیریږی۔ دا خلق ډیر جنګیالی او توریالی دی۔

قمری د باړے په قبله اباد دی۔ دغه شان «سه پائے» په وادئ بازار کښے استوګن دی۔ د ژمی په موسم کښے کجورئ ته راکوزیږی۔ دکجورئ په میدانی علاقه کښے «علم ګودر» په مقام دے خلقو د وسلے جوړولو یو کارخانه هم جوړه کړی ده۔ چه هرقسم وسله په کښے تیاریږی۔

اکاخیل د باړے په سویل نمرخاتهٔ علاقه کښے اباد دی۔ او د ادم خیلو زیاته ابادی د کوهاټ نه په قطب په دره کښے ده۔ د خیبر ایجنسئ سره د ادم خیلو هیڅ څه تعلق نشته۔ البته د دوئ دوه قبیلے کالاخیل او ژواکی د خیبر ایجنسئ په سیاست کښے داخل شمیرلے شی۔ د ادم خیلو حد په نمرخاتهٔ د ختکو سره جنګیدلے دے۔ د افریدو څه ابادی په دکن کښے هم شته۔ څه په پانی پت او څه په کشمیر کښے هم اباد شوی دی۔ په وزیرستان (کانی ګرم) کښے د دے خلقو څهٔ ابادی هم شته۔

۷۔ **کرلانی قبائیل۔ ختک :۔** د روایاتو مطابق د ختکو د مشر نیکهٔ نامه لقمان وه۔ چه د یو واقع له سببه په ختک مشهور شو۔ د لقمان دوه ځامن وو۔ تورمان او بولاق۔ د تورمان هم دوه ځامن وو۔ ترے او ګکے۔ د پلار په اولاد کښے ترے نومیالے وو۔ او د تورمان ټول اولاد د دهٔ په نامه نوموړ شو۔ د تری هم دوه ځامن وو۔ برګویټ او امیر یا امند۔ د دوی د اولاد تفصیل د شجرے نه څرګند دے۔

د ختکو وړومبئ استوګنه په کوه شوال کښے وه۔ چه د کوهِ سلیمان د قبلئیزے سلسلے یو لړ دے۔ او نن ورځ په کښے وزیر اباد دی۔ د نن نه څه کم و زیات اووه سوه کاله اګاهو دوئ د خپلے مینے د منګلو په ملګرتیا کښے د بنوں علاقے ته راغلل۔ او په هغه زمکه میشته شول چه نن ورځ پرے احمد زی وزیر استوګن دی۔ څه موده پس د منګلو او شیتکو ترمینځ بدی جوړه شوه۔ او منګل د دے علاقے نه د شیتکو د میرځئ په وجه په وتلو مجبور شول۔ ولے ختک لا هم په دے زمکه استوګن وو۔ خو د ختکو او شیتکو تعلقات هم خراب شول۔ او ختک هم د دے علاقے نه په کهه لاړل۔ او په کربوغه، تیری، لاچی، شکردره ان چه د اباسیند ترغاړے پورے په ټوله علاقه قابض شول۔ په دے

وخت کښې د اعلاقه شاړه او غیرآباده وه- له دې کبله دوئ ته د دې په قبضه کښې څه ګړاوټ پېښ نهٔ شو- په دې ورځو کښې د دیښتې نه ترکوهاټ پورې علاقه کښې اورکزی مېشته وو- او د کرُمې د لور نه به بنګښ هم د کوچیانو په ډول دې علاقې ته تلل راتلل- اتفاقاً د اورکزو او بنګښو ترمینځه دشمنی پیدا شوه- د خټکو او د اورکزو په مینځ کښې هم ورانه وه- نو خټکو او بنګښو په شریکه اورکزی اووهل- او د دې په نتیجه کښې دیښتې، پنیاله، د زېړې نه ترتورخېړه پورې ټوله علاقه د خټکو په لاس راغله- او د خټکو او بنګښو په مینځ کښې د لاچئ او ګدا خیلو ترمینځ غر برید مقرر شو-

د خټکو د علاقې قطب ته یوسف زی، قبلې ته ئې خلیل، افریدی او بنګښ او سویل ته ئې د بنوں علاقه ده- د دوئ علاقه به په اوږد والی قریبًا سل میله او په پلنوالی به اندازاً پنځوس میله وی- د دوئ په سرخاته اباسیند دې- ولې د اباسیند نه پورې غاړه هم خټک آباد دی- او ترمارې پورې رسیدلی دی- "مکهډ" د دې خټکو مشهور مقام دې- خټک په خپل مینځ کښې په دوو حصو کښې وېش دی- یو قطبی او بل سویلی- د سویلی خټکو په علاقه کښې د مالګې درنګونه دی- د دې علاقې زمکه میدانی او شګلنه ده- غرونه ئې بیخی غیرآباد او ګنجې یمن دی- تیرې، لاچئ، کرک، شکردره وغیره د دې علاقې مشهور کلی دی- د قطبی خټکو علاقه هم ټوله غرځېزه او کاڼرېزه ده- د دوئ غرونه هم بې بنې بې توبنې دی- اکوړې، شیدو، نظام پور، امیر او امیرکلان د دوئ په علاقه کښې مشهور کلی دی-

**د خټکو ریاست:-** د خټکو د ریاست او خانئ بانئ ملک اکو وو- چه د درویش محمد (عرف چینجو) ځوئے وو- د مهاجرت نه پس، د خټکو په قبیله کښې د بلی خیلو ټانګه په کربوغه کښې مېشته ده- ملک اکو په څه خبره د خپلو عزیزانو نه خفه شو- او غوړې ته راغے- په دغه ورځو کښې په غوړه کښې مندوزی استوګن وو- نو "ملک اکو" په "ګوازدره" کښې استوګنه اختیار کړه- ملک اکو د ځان سره د ځوانانو یوه ډله تیاره کړه- او په شاهی سړک به ئې تاخت و باخت کولو- په دغه زمانه کښې کابل صوبه د مرزا حکیم په تحویل کښې وه- چه د اکبر میرنے ورور وو-

په دغه ورځو کښې چه اکبر د مرزا حکیم په تعاقب کښې نیلاو ته راغے او د اټک د قلاد تعمیر اراده ئې اوکړه- نو د شاهی سړک د حفاظت تابیا ئې هم اوکړه- د علاقې زمیندارانو او سپین بږیری ئې راوبلل- او د دې سړک د حفاظت ذمه واری ئې پرې واچوله- ولې دوئ

په اتفاق د دے کار د پاره دملک اکو نوم پیش کړو۔ چنانچه اکبر بادشاه ملک اکو ته دشاهي سړک د حفاظت کار اوسپارلو۔ او د دے خدمت په بدل کښے د بادشاه دلورى نه دخیر اباد نه تر نوښاره او د پبو نه تر موسلي درے پورے علاقه په جاګیر کښے ورکړے شوه۔ ځلوزی او سپین خاک هم د دهٔ په جاګیر کښے شامل شول۔ دے جاګیر نه علاوه په شاهي سړک د محصول وصولولو حق هم ورکړے شو۔ او د دے وخت نه دملک اکو په کورنئ کښے ریاست قائم شو۔

ملک اکو یو هوښیار او مدبر سړے وو۔ هغه د شاهي سړک د حفاظت په غرض خپل سړی مقرر کړل۔ او د لنډی سیند په سویلي غاړه ئے مصری بانډے ته مخامخ یوکلے اباد کړو۔ چه تر اوسه د دهٔ په نوم په سرائے اکوړه مشهور دے۔ او هغه وخت به ورته ملک پور هم وئیلے شول۔

ملک اکو د پیر سباق په مقام د بولا قوسره په یو جنګ کښے اووژلے شو۔ د ملک اکو (ته) څامن وو۔ (۱) یحیٰ خان (مورئے میری خیله ناروکه نومیده)۔ (۲) نظام خان (مور ئے بولاقه ندرکه نومیده)۔ یوسف خان (مورئے غوریه خیله نوم ئے دردانه وو)۔ (۴) تاتار خان۔ (۵) خضر خان۔ (۶) عبدالغفور (ددے واړه د یوے مورنه وو۔ (۷) طاوس خان (د مور نوم ئے بائ او خټئ وه۔) ۔ (۸) مصری خان (مورئے ځلوزی وه)۔ د پلار نه پس یحیٰ خان دخټکو د ریاست واکدار شو۔ دیحیٰ خان په وخت کښے د خټکو او یوسف زو تر مینځه دشمني پیدا شوه۔ او د دوئ ترمینځه د جنګونو یو سلسله شروع شوه۔

د یحیٰ خان یوولس ځامن وو۔ شهباز خان، بهادر خان، عالم خان، شریف خان، جلال خان، محمد خان، ښیادی خان، حکیم خان، عبدالله خان، آدم خان او فیروز خان۔ د پلار نه پس شهباز خان د خټکو دیئس شو۔ شهباز خان په سنه ۱۰۰۰ھ کښے زیږیدلے وو۔ د زیږیدنے تاریخ ئے خوشحال خان په دے ډول وئیلے دے

شهباز خان د یحیے خان ښکلے فرزند | وو په جنګ کښے د رستم هسے څرګند
چه تاریخ د زیږیدوے ددهٔ اوغوښت | عقل وے چه شهباز خان اجل بلند رسنه ۱۰۰۰ھ

د شهباز خان په وخت کښے د خټکو او یوسف زو مخالفت نور هم زیات شو۔ نوموړی د یوسف زو سره په یو جنګ کښے سخت ژوبل شو۔ او په کال سنه ۱۰۵۰ھ / ۱۶۴۰ء کښے وفات شو۔

د شهباز خان نه پس د هغهٔ مشرځوئے خوشحال خان دخټکو سردار شو۔ خوشحال خان په کال سنه ۱۰۲۲ھ کښے زیږیدلے وو۔ د (۲۸) کالو په عمر کښے د خټکو د سردارئ په منصب

او تاکلے شو۔ او د شاه جهان د لوری نه هم د یو شاهی فرمان په ذریعه خاندانی جاگیر او منصب ورکړے شو۔ د اورنگ زیب په وخت کښے د خوشحال خان او مغل حکومت تعلقات ډیر خراب شول۔ د دے واقعاتو تفصیل وړاندے تیر شوے دے۔

خوشحال خان په خپل ژوند کښے د قام مشری خپل مشر ځوی اشرف خان ته اوسپارله. ولے اشرف خان هم د مغل حکومت مرسته او اعتماد حاصل نهٔ کړے شو۔ او په ۱۰۹۳ھ کښے د سید بهولا شاه حاکم پیښور په لاس گرفتار او هند ته بندیوان اولیږلے شو۔ او په بیجاپور کښے قید شو۔ او هم په دے قید کښے وفات شو۔

د اشرف خان د گرفتاری نه پس په ختکو کښے بے اتفاقی پیدا شوه۔ څنے خلق په بهرام خان پسے او څنے په افضل خان پسے چه د اشرف خان ځوئے وو۔ او له دے کبله په ختکو کښے په خپل مینځ کښے جنگونه شروع شول۔ ولے د بهرام خان د وفات نه پس افضل خان د ټول قام مشر شو۔ نوموړے د محمد شاه مغل په عهد کښے وفات شو۔ د افضل خان اته ځامن وو. چه دوه په کښے قابل ذکر دی۔ محمد علی خان او سعد الله خان چه شهید خان هم مشهور دے۔ محمد علی خان به په اکوړی کښے اوسیدلو۔ او سعد الله خان به په تیری کښے۔ د پلار د وفات نه پس د دواړو ورونو په مینځ کښے نااتفاقی پیدا شوه۔ محمد علی خان په تیری حمله اوکړه۔ ولے د سعد الله خان د لاسه ئے تیښته اوکړه۔ او د دے په نتیجه کښے د اکوړی نه هم بے دخله شو۔

د سعد الله خان هم اته ځامن وو۔ چه په دوی کښے سعادتمند خان او خوشحال خان مشهور دی۔ سعادتمند خان به د پلار سره په اکوړی کښے اوسیدلو۔ او خوشحال خان به د پلار د لوری نه په تیری کښے حاکم وو۔ د نادرشاه ایرانی نه پس چه هرکله د افغانستان حکومت پښتنو ته په لاس ورغلو۔ او احمد شاه ابدالی د پښتنو بادشاه شو۔ دغه وخت د ټول خلق لوئے خان سعد الله خان وو۔ چه د گدیٔ ځائے اکوړے وو۔

په کومو ورځو کښے چه احمد شاه ابدالی په پنجاب باندے د حملے کولو په غرض پیښور ته راغلے وو۔ نو د سعد الله خان مشر ځوی سعادتمند خان د ختکو د یو لوئے لښکر سره د دهغهٔ په خدمت کښے حاضر شو۔ او د دهغهٔ په فوځونو کښے شامل شو۔ په دے اثنا کښے د محمد علی خان ځوی لشکر خان چه په نوښار کښے به اوسیدلو۔ چه میدان خالی اولید نو په اکوړی ئے حمله اوکړه۔ د دے کورنی جنگ کښے سعد الله خان اووژلے شو۔ هرکله چه خوشحال خان په تیری کښے د دے واقعاتو نه خبر شو۔ نو د تیری نه د اکوړی په لور روان شو۔ په

لشکر خان کښې د دغۀ د مقابلې توان نۀ وو- نو د خپل آل وعیال سره بونیر ته اوتښتیدۀ.
آل و عیال ئې په بونیرکښې پرې ښود- او په خپله پنجاب ته لاړ- او د نواب معین الملک
(میرمنو خان) سره نوکر شو-

خوشحال خان چه ددې واقعاتو نه خبرشو - نو دا ټول حالات ئې د احمد شاه ابدالی
په خدمت کښې اولیکل- او د لشکر خان د گرفتارۍ خواست ئې اوکړو- ددې خواست په
بنا احمد شاه دغه گرفتار کړو- او بندیوان ئې خوشحال خان ته اولیږلو- او دغۀ د پلار په
قصاص کښې قتل کړو-

څه موده پس مرهټیانو په پنجاب حمله اوکړه- احمد شاه ابدالی بیا د دوی مقابلې ته راروان
شو- او پیښور ته راغے- او د مرهټیانو د مقابلې په غرض ئې د اول فوځ سره خوشحال
خان حاکم تیری هم اولیږلو- د مرهټیانو او خوشحال خان مقابله د حسن ابدال په خوا وشا
کښې اوشوه- په دې جنګ کښې خوشحال خان اووژلے شو- ددې واقعاتو په خبریدو احمدشاه
ابدالی په ډیرې تندۍ د مرهټیانو د مقابلې په غرض فوځۍ امداد اولیږلو- داخل په دې فوځونو
کښې سعادت مند خان هم وو- په دې موقعه سعادت مند خان ډیره مړانه ښکاره کړې وه-
نو احمد شاه دغۀ د جهلم پورې علاقې حاکم مقرر کړو- په کومو ورځو کښې چه احمد شاه
د مرهټیانو سره د یو فیصله کن معرکې په غرض هند ته راغے- نو د دغۀ په فوځونو کښې
سعادت مند خان هم د خپلې قبیلې د یو لوئې لښکر سره شامل وو- او د پانی پت په میدان
کښې ئې ډیره بهادری څرګنده کړې وه- او ددې په انعام کښې ورله احمد شاه د سردارۍ
خطاب ورکړے وو-

د احمد شاه نه پس د تیمور شاه په زمانه کښې هم سعادت مند خان سعادت مند
وو- تیمور شاه دۀ له د سرفراز خان خطاب ورکړے وو- او دے د خټکو په خانانو کښې
اخری خان وو- چه د خټکو په ټوله علاقه ئې حکومت کړے دے- د سعادت مند خان د
وفات نه پس د خټکو خانی دوه ځایه شوه- د سویلی خټکو خانان به په تیریکښې اوسیدل-
او د قطبی خټکو خانان به په اکوړی کښې-

**د سویلی خټکو خانان ۱-** د سعادت مند خان نه پس شهباز خان په تیری
کښې حاکم شو-

د شهباز خان شل ځامن وو- چه په دغوی کښې منصور خان، د پلار جانشین شو- د منصور
خان نه پس د دغۀ وراره ناصرخان د خانۍ په گدۍ کښیناست- د ناصرخان دوه ځامن

وو- ارسلا خان او خوشحال خان - په ناصرخان پسے ارسلا خان مشر شو - دغه وخت په افغانستان کښے د شاه محمود سدوزی حکومت وو-

د شاه محمود د معزولئ نه پس هرکله چه د افغانستان تخت د سدوزو نه بارکزو ته منتقل شو - او په افغانستان کښے امیر دوست محمد خان او د پېښور په علاقه دهغهٔ ورونه حاکمان وو- په دے موده کښے د ختکو خانان هم ډیر بدل رابدل شول- په دے ورځو کښے په صوبه سرحد باندے د سیکانو حملے هم شروع شوے وے- له دے کبله به د ختکو خانان کله د سیکانو ملګری وو- او کله د سردار خیلو- تر دے چه په ۱۸۴۹ء کښے د سیکانو ریاست سقوط اوموند- او د پښتنو په علاقه هم د انګریزانو اقتدار قائم شو-

د ۱۸۵۷ء د هنګامے په وخت کښے خواجه محمد خان د تیری نواب وو - هغهٔ د انګریزانو مرسته اوکړه - او د دے خدمت په بدل کښے د تیری ریاست دده په کورنئ کښے په زوړ دستور نسل په نسل بحال اومنلے شو - او دا علاقه د دوی د جاګیر په مثل د دے کورنئ په قبضه کښے وه- د پاکستان د قیام نه پس هرکله چه په دے صوبه کښے جاګیرونه منسوخ شول نو دا جاګیر هم ختم شو-

**د قطبی ختکو خانان :-** د سردار سرفراز خان (سعادت مند خان) نه پس د هغهٔ یو ځوئے آصف خان په اکوړی کښے حاکم وو- د هغهٔ نه پس د هغهٔ ورارهٔ فیروز خان او د هغهٔ نه پس عباس خان چه د فیروز خان ځوئے وو- د قطبی علاقے د ختکو نواب وو- دغه وخت د رنجیت سنګه زمانه وه- رنجیت سنګه دده خان سره خوشګوار تعلقات قائم کړل- او دواړو د دوستئ او ورورولئ د پوخ والی په غرض په خپل مینځ کښے د یو بل سره پټکی هم بدل کړل- (رنجیت سنګه به دا لویه د هرهغه بااقتداره پښتون سره کوله چه د چا نه به بهٔ څه خاص غرض مد نظروو-) ولے د دوی دا دوستی د پېښور سردارانو د خپل ځان د پاره خطرناکه اوګڼله - او په زړهٔ کښے ئے د عباس خان نه ویره پیدا شوه- او په هغهٔ ئے یو چل اوکړو- عالم خان نومے یو اورکزے ملک او یو څو نور سپین ږیری او ملکان ئے عباس خان ته په جرګه اولیږل- او هغه ئے د میلمستیا په ډول پېښور ته راوبللو- ولے د میلمستیا په ځائے په پېښور کښے قید کړو- او څو ورځے پس ئے په زهرو مړ کړو- دده نه څه لږه موده وړاندے د عباس خان یو ورور خواص خان سیکانو په لاهور کښے قید کړے وو- خواص خان د رنجیت سنګه د ناجوړتیا په هله ګوله کښے د څینے نورو قیدیانو سره د جیل خانے نه اوتښتیدو - او خپلے علاقے ته راغے-

دغه ورځو کښې د قطبي خټکو لوئ خان نجف خان وو. خواص خان د قيد نه پس په خوړه ته راغی. ولې دلته کښې د محمد افضل خان د لاسه چه د نجف خان ځوئ وو اووژلے شو. د نجف خان او پېښور د سردارانو ترمینځه د سنجو خپلوی وه. په دے وجه نجف خان د خټکو په علاقه څه موده حکمران پاتے شو. دهٔ به سردار سلطان محمد خان ته دخپلے علاقے د خراج په دول دولس زره روپۍ ورکولے. په کومو ورځو کښې چه د سيکانو جرنيل هری سنګه پېښور فتح کړو. نو نجف خان په نيلاو ته او تښتيدو. سيکانو دجهانګيری په مقام يوه قلا جوړه کړه. او د خټکو ميدانی علاقے ته ئې په خپله قبضه کښې اوساتله. او عزيزه علاقه ئے د خټکو خانانو ته په دے شرط پرے ښوده چه دا ټک او پېښور ترمينځ لار به د سيکانو د ټک راتګ د پاره آزاده ساتی. نجف خان څه موده حکمران وو. ولې هغه هم عباس خان دځوی د لاسه اووژلے شو. د پلار په ځائ محمد افضل خان دخټکو خان شو. ولې د سيکانو دګورنر ابو طبيله (اویتيباټل) دګورنرۍ په زمانه کښې د دے خټکو په جاګير کښې هم څوڅله تغير راغی. د ۱۸۵۷ء په هنګامه دے خانانو هم د انګريزانو مرسته اوکړه. او د دے په بدل کښې د دوئ جاګير بحال پاتے شو.

. ۸- **کرلاڼي قبائيل؛ زدران (جدران)**:- د شجرے مطابق زدران يا جدران هم د کرلاڼي طبقے يوه طائفه ده. دا خلق ډير سخت، جفاکش او محنتيان دی. د دوئ علاقه د خوست نه په قبله او د زرمت نه نمرخاتهٔ په سويل ده. د دوئ دکرکيلے زمکه زياته ده. د دوئ په علاقه کښے انار او بادام زيات پيدا کيږی. د دوئ نه په نمرخاتهٔ خوست وال، په قبله ګرديزيان، سويل ته غلجي قبائيل او قطب نمرخاتهٔ ته ئے منګل او څه توری پراتهٔ دی. د غلجيو او منګلو سره د دوئ اکثر بدی وی.

۹- **اتمان خيل**:- د شجراتو مطابق دا طائفه هم په کرلاڼي طبقه کښې شامله ده. ولې د روايانو مطابق دوئ د خابنی خيلو (يوسف زی، مندړ) په وفاق کښے شامل شوی دی. او د خابنی خيلو د مهاجرت په ورځو کښے د هغوی سره دے خپلے موجوده علاقے ته راغلی دی. د دله زاکو او يوسف زو په جنګونو کښے دوئ د يوسف زو په مرسته کښے جنګيدلی وو. د روايا تو مطابق دوئ په اوله کښې په وادئ ګومل او ټانک کښې اوسيدل. او بيائے د دے ځائ نه مهاجرت اوکړو. او د يوسف زو په ملګرتيا کښې وادئ پېښور ته راښکته شول د دے ځائ نه بيا تيراه ته لاړل. ولې هلته هم ټيکاو نهٔ شول. او ارنګ برهنګ ته راغلل او تر اوسه پورے په دے علاقه کښے استوګن دی. د دوئ قطب ته پنجکوړه، قبلے او قطب ته

ئے باجوړ او د مهمند وغرونه ـ دغه خاته ته ئے سوات او سویل ته ئے ځستنغر دے. د کروندے زمکه ئے کمه ده. صرف د غرونو په لمنو کښے د کرکیلے کار کیږی ـ د دوئ په غرونو کښے میزرے ډیر کیږی ـ د دے قبیلے ځنے ټپے لکه بائیزی، اسماعیل خیل، دعوت خیل او سه صده د مردان په علاقه کښے اباد ے دی ـ څرکے، میاں خان سنګاؤ او کوه برمول د دوئ مشهور کلی دی ـ

۱۰ ـ **خوګیاني :ـ** دا قبیله هم په کرلاني کښے داخله ده. د شجرے مطابق د دوئ مشهور خیلونه دا دی ـ شیرزاد، پړیه، حذرخیل، بارک، درمان (عبدالرحمان) بوبوخیل، لقمان خیل، شادی خیل)ـ دا خلق د ننګرهار د علاقے نه قبلے ته او د سپین غر په قطب قبله استوګنه لری ـ په دوئ کښے د شیرزاد ټپه په شمیرکښے زیاته ده. ویلے شی چه د شاه جهان (مغل) د جلوس په اول کال د دے طائفے د بارک په څانګه کښے د لقمان خیلو او شادی خیلو ترمینځه دشمنی پیدا شوه ـ لقمان خیلو د حذرخیلو په کومک شادی خیل ډیر بد بد اووهل ـ شادی خیلو د غلجیانو نه کومک او غوښتلو ـ او غلجیان د شادی خیلو په مرسته اودریدل ـ او د کابل صوبه دار هم د دوئ مرسته اوکړه ـ په دے جنګونو کښے د بارک اولاد ته ډیر زیان اورسیده ـ او د دے نتیجه دا شوه چه شیرزاد او حذرخیل دواړه ټبے په بادشاهی اطاعت مجبورے شوے ـ

د خوګیانو په علاقه کښے انګور، انار، توتان او انځیران ډیر پیدا کیږی ـ دا خلق اکثر زمینداری کوی ـ او ځنے مالونه هم ساتی ـ د خپل وطن نه بهر ته کم اوځی ـ ډیر تکړه، زورور او جنګیالے قام دے ـ د دوئ ځنے ټټلے په خوست کښے هم اباد ے دی ـ

**پړبه :ـ** د خوګیانو یو څانګه ده ـ ولے د ډیرے مودے نه د دوئ نه بیله شوی ده ـ او ځان له په خپله نامه مشهوره ده ـ د دوئ مشهور خیلونه دا دی ـ میاں خیل، بی خیل، سردار خیل، محمود خیل، ترېزی، ملیزی، اشی زی، دوړه خیل، پوچی خیل ـ

ویلے شی چه په اوله کښے ټول خوګیاني په خوست کښے استوګن وو ـ ولے د جهانګیر په زمانه کښے د «زرمت» په علاقه کښے اوسیدونکو ځنے غلجیو قبائیلو په دوئ حمله اوکړه ـ او دوئ ئے د خپلے علاقے نه بے دخله کړل ـ د شاه جهان په زمانه کښے په دوئ کښے کورنی جنګونه شروع شول ـ او په نتیجه کښے دوئ ډیر کمزوری شول ـ د دے قبیلے پړبه څانګه په خوست کښے استوګنه ده ـ د دوئ اکثر خلق زمینداری کوی ـ او ځنے ځنے په کښے سوداګران هم دی ـ

**درمان :-** د شجرے مطابق دوئ د خوګیانو زیلَه ده- د دوئ شپږ څانګے دی- چه تفصیل ئ دا سے دے- حاجي خان خیل، سوری خیل، احمد خیل، خودی خیل، کټی ی،منګئ دا شپږ واړه څانګے په ممورې هم مشهورے دی- په خوست کښے استوګن دی- او د کرکیلے کار کوی-

۱۱- **زازی :-** دوئ هم په کرلاني طبقه کښے داخل دی- په شجراتو کښے د خوګیانو سره شامل ګڼلی شوی دی- دا خلق د " توریانو " نه قطب قبلے ته پیواړ کوتل نه پورته د اریوب په زمکه اباد دی- په دودونو، دستورونو، خوراک څښاک او جامه کښے د " توریانو " په څیر دی- ولے په عقیده کښے بیخي د هغوی نه برعکس دی- دوئ ټول سني مذهب دی- د دغه وجه ده چه د دوئ او توریانو ترمینځه اکثر جنګونه کیږی-

۱۲- **توری :-** دوئ ته توری زی هم وئیلے شی- د وادئ کرم یو مشهوره قبیله ده- د پښتنو درواياتو مطابق دا قبیله هم په کرلاني طبقه کښے شامله ده- او په شجراتو کښے د خوګیانو یوه څانګه او د زازیانو تربوران ګڼلے شی- دا قبیله بابر هم د ۱۵۰۵ء د واقعاتو په لړ کښے ذکر کړی ده- د دے قبیلے د اصل په باب کښے د مؤرخینو ترمینځه اختلاف دے- څنے دوئ نسلاً مغل ګڼړی- او څنے ئے هندیان ولے دا قیاسات درست نه معلومیږی- د خوشحال خان خټک د وینا مطابق دوئ نسلاً کرلاني پښتانهٔ دی- او دا وینا درسته ده- دا قبیله د خوست نه په قطب او د سپین غر نه په سویل د کرمے سیند په دواړو غاړو اباده ده- دا علاقه په ابتدا کښے د بنګښو په قبضه کښے وه- ولے د یو ناموس دارئ په معامله کښے توریانو د زازیانو په کومک بنګښي د دے علاقے نه اوویستل-

توری قبیله په پنځو څانګو کښے ویش ده- حمزه خیل، مستو خیل، وپرزی، علی خیل او غونډی خیل- د دوئ علاقه ډیره زرخیزه او اباده ده- دا خلق د عقیدے په لحاظ شیعه مذهب دی- او د مذهبي احکامو په پابندئ کښے ډیر کلک دی- ماخذ ده څه ډیر پابند دی- د خپلو قبیلوی دستور مطابق د سیدانو ډیر احترام کوی- هر یو فرد د سیدانو مرید وی- دوئ په څلورو ډلو کښے ویش دی- یوه ډله په میاں مرید مشهوره ده- او باقي درے واړه ډلو ته دریو ندئ وائي- دا خلق د میلمه ډیر قدر کوی- زړور او توروزن خلق دے- د توریانو په علاقه کښے د " بدرګے " نه بغیر تلل ډیر ګران دی- ولے د بدرګے په صورت کښے مسافر ته هیڅ خطره نهٔ وی-

دا خلق څنے مخصوص رسمونه هم لری- د دوئ په خیال کښے ټول خلق صرف دوه قسمه

دی- یو ربنتونی او په بنیغه لار تلونکی او بل په کږه لار روان. دوی خپل هم عقیده اوهم مسلک خلق ربنتونی ګڼي - او نوروته په غلطه لار روان وائې- د دوی کره چه هلک پیدا شی نو د هغه د سر د پاسه ډزې کوی، غرض ئې داوی چه د وړوکوالی نه د ټوپک د اواز سره بلد شی - او بیا په ټلیتوب کښې د ګولیو د بارانه نه ترهه نه کوی.

۱۳- **کرلاني قبائیل (وزیر)** ۱- د روایاتو مطابق د دې طائفې مورث اعلی وزیر نومیده- چه د سلیمان ځوئې اود کرلاني نمسې وو- د وزیر دوه ځامن وو- د یو نامه خدرې ؤو د بل نامه لالې وه- وئیلې شي چه په اوله کښې دا خلق د «خوست» په غرونو کښې اباد وو- د څوارلسمې صدئ په اخر کښې د قبیلې په لوړ اوغځېدل - د ټوچي په قطب د بنون او کوهاټ په سرحدی غرونو کښې استوګن شول او په قلاره قلاره ئې د ورو ورو کرم نه تر درۀ ګومل پورې د ټې علاقه قبضه کړه او دلته استوګن شول دغه داستوګنې په وجه دا علاقه د وزیرستان په نامه مشهوره ده- د وزیرستان د قبه به اووه زره مربع میله وی- په دې علاقه کښې د وزیرو دوه لوئې څانګې احمد زی او اتمان زی اباد دی- دا څانګې بیا په نورو ډیرو وړو وړو زیلو کښې تقسیم شوی دی-

د شجرې مطابق د خدرې درې ځامن وو- د یو نوم موسی دو- چه په «درویش» هم مشهور دې- ځکه چه ډیر پرهیزګار، او نیک نام بنیادم وو- او تر اوسه پورې ټول وزیر ورله د یووولی په نظر ګوری- د موسی درویش قبر د «برمل» په علاقه کښې د یورنهٔ لاڅ سره نزدو په پاکستانی علاقه کښې واقع دې- د موسی درویش قبر د وزیرو په نظر کښې ډیر اهمیت لری- او په هره سخته کښې د دهٔ قبر ته رجوع کوی-

د روایاتو مطابق د موسی درویش دوه ځامن وو- د یو نوم اتمان وو- اولاد ته ئې اتمان زی وائې- د بل نوم احمد وو- اولاد ته ئې احمد زی وئیلې شي- ولې د دواړو اولاد په «درویش خیل» مشهور دې- د خدری د دریم ځوی نامه محمود وه- د هغهٔ یوځوئې وو مسعود نومیده. اولاد ئې په مسعود مشهور دې- د خدری د دریم ځوی نامه مبارک وه- دې هم یو نیک او بزرګ سړې وو- د دهٔ روضه هم د وزیرو په نظرکښې لوئې اهمیت لری- د «مبارک» یو ځوئې وو- چه ګربز یا ګرباز یادیږی- اولاد ته ئې ګربزوئیلې شي-

اتمان زی په خپل مینځ کښې درې څانګې دی- محمود خیل، براهیم خیل او ولی خیل- دا درې واړه څانګې بیا په نورو ډیرو زیلو کښې تقسیم شوی دی- لکه چه د شجرې نه دا خبره څرګندهده په دې ډول احمد زی هم په دوو څانګو کښې ویش دی- سین خیل او کالو خیل- د سین خیل نه درې

بناخه هاتی خیل، سرکی خیل او عمر زی بیل شوی دی. او بیا د دوی نه نورې زیلې بیلې شوی دی. دغه شان کالو خیل دوه څانګې دی. نصری او سپیرکی. د نصری نه دوه بناخه باجی خیل او شادی خیل جدا شوی دی. او د سپیرکی نه محمد خیل، سدی خیل او سدنی خیل وتلی دی. او بیا د هریونه نورې زیلې خورې شوی دی.

د مسعود دوه خامن وو. یو علی. اولاد ته ئې علی زی وائی. او بل بهلول. اولاد ته ئې بهلول زی ویلے شی. د علی هم دوه خامن وو. یو فتح اولاد ته ئې فتح خیل او عوام ورته پوتیه خیل وائی. او بل «شمن» چه اولاد ئې په شمن زی مشهور دے. د دوی اولاد هم په نورو زیلو کښې ویش دے. لکه چه د شجرې نه ښکاریږی. بهلول زی په څلورو څانګو کښې ویش دی. همل خیل، باند خیل، نونو خیل او شنګی. د همل خیل درې څانګې دی. عبدلی ملکشی او نظر خیل. په دے ډول باند خیل هم په دوو څانګو کښې تقسیم دی. ایکم خیل او طوطیه خیل. د نونو خیل درې بنځې وے. د اول بنځې اولاد ئې همیبت خیل او عمر خیل. د دوېمې بنځې اولاد ئې علی خانی، میرخانی او منډا، او د دریمې بنځې اولاد ئې مهرخانی او باقی یادیږی. د دے ټولو څانګو نه نورې نورې زیلې خورې شوی دی.

د وزیرو مشهورې علاقې دا دی. (۱) علاقه شوال. په دے علاقه کښې کابل خیل او جانی خیل او ملکشی او سی چه د اتمان خیلو زیلې دی. (۲) علاقه شاکی. دا علاقه د عزونو په مینځ کښې یو هواره کټه ده. په دے علاقه کښې ملکشی، میامی، شادیکی او خونا خیل استوګن دی. د دوی نه ښکته هاتی خیل، سدنی خیل او سپیرکی میشته دی. او د ټولو نه ښکته د مسعودو په څانګو کښې علی زی او بهلول زی اباد دی. (۳) علاقه برمل. د وزیرو په علاقه کښې د عزونو دننه د برمل علاقه د یو وادی په شکل کښې واقع ده. زمکه ئې هواره او د کرکیلے د پاره ډیره غوره ده. دا علاقه په څو ورو ورو کټیو کښې ویش ده. په دے کټی کښې د مرغې په زمکه د کابل خیلو زیلې څانګې سیپلی او پوپلی استوګن دی. وزیر د اوری په موسم کښې دلے خپل مالونه پیائی. د موسٰی درویش قبر هم په دے علاقه کښې دے.

۴. رزمک :. دا علاقه هم یوه وړه کټی ده. آب و هوائې ډیره خوند ناکه ده. په دے علاقه کښې توری خیل او محبت خیل چه د اتمان زو څانګې دی استوګن دی.

۵. دره خیسور :. یوه وړه کټی ده. چه د ډوګړو د علاقې سویل ته واقع ده. په دے کټی کښې پورته ممیت خیل، په مینځ کښې توری خیل او د دوی ښکته ورو کی اباد دی.

۶. شرنه :. د دوړو قبیلے ته ده. دلته مدا خیل، خدرخیل، او وړو کی استوګن دی.

۷ - شکتوی:- دا یو دره ده چه پورته په کښې توری خیل او په مینځ کښې مسعود اباد دی.

۸ - وانا :- د جنوبي وزیرستان مرکز دے. د وانا علاقه د وزیرو د ملک د جنوبي حصے ته د گومل د درے په قطب د دغه اوچتو غرونو ته گیره ده چه سویلی زویږے د گومل تر درے رسي. دا علاقه په اصل کښې یو کټئ ده. چه د قطب نه په د سویل په لور قریباً پنځلس کروهه اوږده وی. په دے کټئ کښې یو ځوړ بهیږی. چه اخر ته د گومل سیند سره یو ځائے کیږی. د ځوړ په دواړو غاړو زمکه د کروندے ډیره مرئ ده. ولے اکثره باراني ده. او آبي ډیره کمه ده. د وانا علاقه داوړی په موسم کښې ډیره گرمه او د ماشو نه ډکه وی. او گنډران په کښې گران وی. د وانا په مینځ کښې دوتاني چه د لودیانو ښاخ دے اباد دی. او په نوره علاقه کښې د احمد زی ځانگے نه زلی خیل. دوزیرو اکثرے تپے د اوړی په موده کښې خپل مالونه د څرن د پاره دے علاقے ته راولی.

(۹) علاقه بدر:- دا هم یو کټئ ده. چه اوږد والے به ئے د کاني گرم پورے پنځه کروهه او پلن والے به ئے قریباً یو میل وی. په دے کښې سپیرکی او شتگی اباد دی. مسعود په دره ځوره او میدان کښې اوسی. «مکین» د مسعودو مشهور کلے دے. د مکین او څو نورو کلو نه علاوه د دے خلقو کلی ډیر واړه واړه او د لس شلو کورونو نه زیات نه دی.

په اوله کښې دا خلق پونده او کوچیان وو. ولے اوس په کښې اکثرے تپے ځائے شوی دی. وزیر او مسعود په اصل کښې یو خلق دے. ولے مسعود په خپله نامه ځان له خوشحاله وی. مسعود زیات په کاني گرم او مکین کښې اباد دی. دوئ د وزیرو نه په شمار کښې کم ولے په زړورتیا او شجاعت کښې د وزیرو نه زیات دی. نن ورځ ټول مسعود په دریو غټو ځانگو کښې ویش یادیږی. یعنی علی زی، بهلول زی او شمن خیل.

د وزیرو مسعودو ژبه د نورو پښتنو په نسبت ډیره گرانه ده. او نور خلق پرے په گرانه پوهیږی. دا خلق اکثر فوځي ملازمت کوی. د نورو پښتنو قبائیلو په نسبت دا خلق په خپل مینځ کښې زیات متحد دی. او په دے وجه په ټولو پښتنو قبائیلو کښې زیات اهمیت لری. په دوئ کښې ځنې مخصوص رواجونه هم دی. په دے خلقو کښې د جرے انفرادی رائے هم ډیر اهمیت وی. د تاریخ په یو دور کښې هم د دے خلقو په علاقه کوم حکومت قبضه نۀ ده کړی. انگریزانو هم په خپل دور اقتدار کښې په دوئ خپلے تنې شلولے وے. ولے دا خلق ئے نۀ وو ایل کړی. د قیام پاکستان نه پس د دوئ علاقے ته انتهائي توجه ورکړے شوی دی. په سوونو واړۀ لوئے سکولونه د دوئ په علاقه کښې جاری شوی دی. هسپتالونه په کښې

جوړ شوی دی- اونن ورځ په دے خلقو کښے لوئے لوئے تعلیم یافته افراد موندلے شی- او هغه ورځ ډیره زر را تلونکی ده چه ددے خلقو د ژوند معیار به بدل شی- اوکوم تکلیفونه اوکړاوُنه چه دوئ په پردی حکومتونو کښے تیرکړی وو- دهغے تلافی به اوشی-

**ګربز:-** د شجرے مطابق ګربز هم د وزیرو یو ښاخ دے- د روایاتو مطابق په اوله کښے دوئ هم د وزیرو سره یو ځائے اوسیدل- ولے د دوئ او بیټنو ترمینځه د جنګونو یو سلسله شروع شوه- او دهغې په وجه دخپلے علاقے نه په وتلو مجبور شول- د دوئ علاقه د وزیرو د علاقے قطب قبلے ته او د سویل شرخاته ته د دوړو د علاقے سره جوخته د غرونو په مینځ کښے ده- دوئ د کابل رعیت دے- د دوئ غرونه دوه میاشتے په واوړو کښے پټ وی- اکثر د کرکیلے کار کوی- او مالونه ساتی-

**لالی وزیر:-** لکه چه د شجرے نه معلومیږی لالے د خدری ورور دے- د روایاتو مطابق دوئ هم د شوال په غرونو کښے د شیتکو سره میشته وو- ولے دوئ د شیتکو یو سرے اووژلو- او د شیتکو د دشمنئ له کبله دخپلے علاقے نه اووتل او د خوګیانو علاقے ته لاړل- اوس هم د سپین غره په خوا اوشا کښے دا خلق په دے خپله نامه اباد دی-

## ۱۳- کرلانی قبائیل- شیتک (دوړ- بنوڅی- تنی)

د شیتکو نه مراد دوړ، بنوڅی او تنی دی-

**دوړ:-** په کومو ورځو کښے چه بنوڅی (کیوی، سودانی) دکوه شول نه د بنون علاقے ته راغلل، نو دوړ هم په دغه ورځو کښے د توچی په دوارو غارو اباد شول- دا معلومه نه ده چه د دوئ نه وړاندے دا علاقه غیر اباده وه- او که څوک دلے میشته وو- په ۱۶۹۶ء کښے د اورنګ زیب عالمګیر د حکومت په زمانه کښے د هغه ځوئے بهادر شاه چه د بنون علاقه فتح کړه نو دغه وخت ئے په دوړو هم دولس زره روپئ د کال مالیه مقرر کړه- او سید حسن نومے یو سړے ئے په دوئ حاکم مقرر کړو- ولے د اورنګ زیب نه پس دے علاقے بیا خود مختاری حاصله کړه- د احمد شاه ابدالی په زمانه کښے دا خلق هسے په نوم رعیت وو- او څه معمولی رقم به ئے د خراج په ډول ورکولو- ولے د بادشاه دلوری نه به په دوئ څوک حاکم نه وو- د سدوزو او بارک زو د جنګونو په دوران کښے دوئ بیا د مالیئے نه ځان ازاد کړو- د دوئ نه په دے لوری وزیر پراته دی- او د وزیرو او د دوئ سخته ورانه ده- په خپلو کښے اکثر جنګونه کوی- ولے د بیرونی دشمن په مقابله کښے بیا خپل اختلافات هیر کړی- عیدک، درپه خیل او امزوڅی هم په دوړو کښے شامل دی-

۱۴- **تني** ۱- د شجرې مطابق دا خلق هم د کرلاني طبقې یوه طائفه ده- تني قبیله په درې څانگو کښې ویش ده- اریوزی، میری خیل او سینکی- دا خلق د خوست په قبلیځې غاړې او سویلی حصه کښې اباد دی- د دوئ قبلیځ غرډیر اباد او د بازونو د ښکار د پاره مشهور دے- دا خلق زخت توربالی او جنگیالی دی- او په دوو گوندیو کښې ویش دی- یعنې اریوزی او سینکی یو گوندی ده- او میری خیل بله- په شیر کښې میری خیل زیات دی- د دوړو په نسبت دا خلق د پښتونولئ په ننگ او ضابطه کښې ډیر مرنی دی- درگئ، حسارک، کرخه، پرځي او اتمان د دوئ په علاقه کښې مشهور کلی دی- زمکه ئې باراني او د خلقو پیشه کرونده ده- د حاکم خوست ماتحت دی- ولے اکثر سر کښی کوی-

۱۵- **بنوڅي** ۱- د دوئ د مورث اعلیٰ نامه شیتک وه- او د شیتک د مور نوم کگئ وو- په اوله کښې دا خلق په کوه شوال کښې اوسیدل- اوس هم په دے غرهٔ کښې د دے خلقو د پخوانئ استوگنے مقام په کگئ میله مشهور دے- د شیتک د ښځ نامه بانو ده- او په دے وجه د دوئ اولاد په «بانو زو» مشهور شو- وروستو دغه لفظ په استعمال کښې بنوسی او بنوڅي شو-

د شیتک درے بنځ وے- د یوے بنځ اولادے دوړ او تني دے- او د بلے بنځے اولادے کیوی او سوراني- او دریمے بنځ ئے دوه ځامن وو- چه جیلم او هوید نومیدل- د دوئ اولاد ډیر کم دے- او په کیوی، سوراني کښې شامل دے-

دا اولس په ابتدا کښې د رود توچي په سویل د غرهٔ په لمن کښې اوسیدل- ولے د سلطان شهاب الدین غوری په زمانه کښې شیتکو د بنوں په موجوده علاقے باندے حملے شروع کړے- دغه زمانه کښې په دے علاقه کښې « انگل منگل » قام اوسیدلو- د دے حملو په نتیجه کښې د شیتک په اولاد کښې کیوی او سوراني اولس حملے جاری اوساتلے- او دغه شان ئے په قلاره قلاره ټوله علاقه قبضه اوکړه- انگل قام د هندوستان په لوراو کوچیدلو او منگل د سپین غر په سویل کښې اباد شول- د دے نه پس شیتکو دا علاقه د خپل پیر په صلاح مشوره په خپل مینځ کښې په دے دستور تقسیم کړه چه د کیوی مشر څوی میری اولاد ته ئے سویلی حصه ورکړه- او کگی ته ئے مشرقی حصه- دا علاقه په هغه وخت کښې ډیره اباده وه- او د « سمی » اولاد ته چه د کگی دویم ځوئے وو- په مینځ کښې برخه ورکړے شوه- او د « سوراني » حصه د قطب په لور تر « تل » پورے اورسیدله- دا علاقه په هغه

زمانه کښې خرابه او ځنګلي وه۔ ولې اوس په ټوله علاقه کښې بهترینه ګټلې شي۔

۱۶۔ **ګنډه پور:۔** د ګنډه پور د مورث اعلیٰ نوم ستورے یا ستوریانے وو چه د میرسید محمد ګیسو دراز ځوے وو۔ د ستوری یا ستوریانی پنځه ځامن وو۔ چه نومونه ئے داسے دی۔ ښیخي، مریږی، ترے (ګنډه پور) امرا او همړ۔ په دوئ کښې د همړ اولاد د پلار په نامه ستوریانی یادیږی۔ او د باقی نورو اولاد په ګنډه پور کښے شامل دے۔

د ګنډه پور مشهورے ټپے دا دی۔ یعقوب زی، براهم زی، حسین زی، عمران زی، خوبي زی او درے پلاره۔

ګنډه پور په اوله کښې پونده او کوچیان وو۔ په ژمی کښې به دامان ته راتلل.او په اوړی کښې به بیا افغانستان ته تلل۔ د شاه جهان په زمانه کښې د مروتو او دولت خیلو ترمینځه یو جنګ اوشو۔ چه مروت په کښې غالب او دولت خیل د ټانک نه په وتلو مجبور شول۔ د دولت خیلو لوے خان زمان خان د ګنډه پورو نه د مرستے خواست اوکړو۔ او دولت خیلو او ګنډه پورو په شریکه په مروتو حمله اوکړه۔ او مروت ئے د خپلے علاقے نه اوشړل۔ د فتح نه پس د خان زمان په خواهش ګنډه پور هم د روهړی په علاقه کښې استوګن شول۔ د ګنډه پورو د علاقے قطب ته دولت خیل، سویل ته ئے میاںخیل، قبلے ته ئے کوه سلیمان او نمر خاتهٔ ته ئے ډیره اسماعیل خان دے۔ د دوی مشهور کلی کلاچی، ټکواړه، لونی، مدی، روهړی او کوټ ظفر وغیره دی۔

۱۷۔ **بنګښ:۔** (شامل طبقه کرلاڼي):۔ دا خلق په خالدی افغنه هم مشهور دی۔ د روایاتو مطابق د دوی د مورث اعلیٰ نامه اسماعیل وه۔ چه د هغهٔ دوه ځامن وو۔ "ګار" او "سمل"۔ په ابتدا کښې دا خلق د ژرمت په علاقه کښې په ګردیز کښې اباد وو۔ د دے ځائے نه د خپلو کورنو جنګونو په نتیجه کښې کمزوری شول۔ دا خلق په خپلمینځ کښې په دوؤ ګوندیو "ګار" او "سمل" کښې تقسیم دی۔ و ئیلے شي چه د زرمت د علاقے نه دا خلق غلجیانو په شړلو مجبور کړل۔ او دوئ د سپین غر په سویل د کرمے، پیواړ او شلوزان په علاقه قبضه اوکړه۔ ولے د اورک زو او د دوئ ترمینځه بدی پیدا شوه۔ بنګښو د خټکو په مرسته اورک زی د کوهاټ د علاقے نه په شړلو مجبور کړل۔ ولے د دوئ ترمینځه د جنګونو سلسله جاری وه۔ اخرچه په جنګونو ستړی شول نو صلح ئے اوکړه۔ چنانچه د قطب په لور غرنۍ علاقه د اورک زو او رسیده۔ او میدان او دره چه نن ورځ په کښې هم بنګښ استوګن دی۔ د

بنګښنو اورسيده- د بنګښنو وادی قبله په نمر خاته اوږده او په غزونو کښې ګیره ده-د دوئ شرقی ، غربي او جنوبي پولے د ختکو سره نګیدلی دی. او قطب ته ئے اورک زی دی- د دوئ څه مغربي او جنوبي حد د وزیرو سره هم نګیدلے دے- بنګښ یو زړور او توریالے قام دے- هنګو ، درسمند ، سترزی ، توغ ، توره ، وړئ وغیره- د دوئ په علاقه کښې مشهور کلی دی- د دے قام څئ خلق د ایران په صوبه مازندران کښې هم موجود دی- او د هندوستان په څئ علاقو کښې خصوصًا په فرخ اباد کښې هم شته- د فرخ اباد نوابان هم د دے قبیلے وو- په پښتنو قبائیلو کښې بنګښ یو اهمه قبیله ده- د بنګښ په قبیله کښې د هنګو خانان د خپلو ښو اخلاقو په وجه د ډیرے ستائینے وړ دی-

**بابړ :-** په اصل کښې د شیرانیانو هم نسل دی- مګر ګمان له په خپله نامه مشهور دی- دوئ د میان خیلو نه سویل ته پراته دی- د دوئ د علاقے سویلی حصه سخته او غریژه ده- دا خلق د شیرانیانو نه علاوه د نورو ټولو پښتنو قبیلو نه وروستو میدانی علاقے ته راغلی دی- او په چودهران کښې اباد شوی دی- دا خلق د تجارت په وجه په ټولو دامانی قبائیلو کښې دولت مند وی- د بابړو یوه لویه حصه د کوه سلیمان نه په هغه لوری په صحرا کښې اباده ده- او پوله ئے د شیرانیانو سره نګیدلی ده- بابړ په دود دستور کښې د شیرانیانو په څیر دی- په مغربي افغانستان کښې هم بابړ شته- مګر په مغربي او مشرقی بابړو کښې سوا د همقومیٔ نه نور هیڅ څیز مشترک نشته-